# تسهيل الحقائق

پښتوشرح

# كنزالدقائق

تصنيف: مولانا **نصيب الله** (ابن الحاج عبدالصمد ماليزئى نورالله مرقده)

جلداول

پښتوژباړه

مولوی سعیداکبر (رستاد) فاضل احسن العلوم کراچی

مفتی نوراحمد (نور) فاضل دارالعلوم کراچی

مكتبة الارشد كوئټه

فون: 03138895104,03013725288

دکتاب نوم : . . . . . . . . .تسهیل الحقائق پښتو شرح کنزالدقائق

مؤلف: مولانا نصیب الله (ابن الحاج عبد الصمد مالیزئی نورالله مرقده)

ناشر: مکتبة الارشد کوئټه ،فون نمبر . ۰۸۱۲۷۷۲۵۲۸۸ .۰۳۰۴۰-۰۳۱۳۸۸۹۵۱ ـ

دلاسته راوړلو ځایونه:

| | |
|---|---|
| مکتبه رشیدیه سرکی روډ کوئټه | مکتبه حنفیه کاسی روډ کوټه |
| مکتبة العرفان کاسی روډ کوئټه | مکتبه دارالاخلاص پشاور |
| مکتبه اسلامیه کاسی روډ کوئټه | مکتبه عمرفاروق پشاور |
| مکتبه دارالعلوم کاسی روډ کوټه | مکتبه رشیدیه اکوړه خټک |
| مکتبه حقانیه چمن | مکتبه علمیه اکوړه خټک |
| مکتبه عمرفاروق کراچی | مکتبه الاحسان بنو |

## فهرست

جلاجلا نمبرورکړل شوی دی بیادهغه مطابق تشریح شوي ده ترڅو دمسئلي په فهمولو اورااېستلوکي اساني وي ترڅه اندازي پوري په ترجمه کي هم دکومي دنشان په ورکولوسره دهرعبارت ترجمه جلا واضح کړل شوي ده څرنگه چي کنزالدقائق یو متن دی چي په هغه کي ډیرعبارات مقدروي نو بنده چي په کوم ځای کي دمقدرعبارت دتخریج ضرورت محسوس کړی وي په هغه ځای کي یي د(قوله) ترعنوان لاندي دهغه عبارت تخریج هم کړی دی.

مفتیٰ به اقوالواجدیدومسائلووغیره ته د(ف) عنوان په دي وجه ورکړل شوی دی چي که کوم لوستونکی وخت ونه لري نو هغه صرف په ترجمه اوتشریح خپل کاروکړي اوپرمخ ولاړشي اودچاسره چي وخت وي دهغه لپاره د(ف) ترعنوان لاندي چي کوم اهم اموزذکرشوي دي له فائدي څخه خالي نه دي نولهذاهغه بایدضرورداهم وګوري.

بنده له څه اردواوعربي شروحاتواودلغت له کتابونوڅخه استفاده کړي ده مګرڅرنګه چي په بنیادي ډول دایودرسي مضمون دی لهذاکماحقه اهتمام شایدنه وي شوی په دي وجه به غلطیاني ضرورشوي وي په دي اساس له قارئینو حضراتوڅخه ګذارش دی چي د﴿ الدين النصيحة ﴾ په نظرکي لرلوسره بنده په غلطیانوضرور خبرکړي ترڅو دهغواصلاح وکړای شي.

## د حضرت استاذمحترم مولانامحمدزیب صاحب دامت برکاتهم استاذحدیث جامعة العلوم الاسلامیة علامه بنوری ټاون کراچی قدرمنه رأیه

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله رب العلمين والصلوة والسلام على اشرف الانبياء والمرسلين وعلى اله وصحبه اجمعين

أمابعد: له قرآن اوحدیث څخه وروسته علم فقه اهم علم دی دهمدي علم فقه په ذریعه سره انسان ددنیا واخرت سعادتونه حاصلوی شي په قرآن کریم کي د الله تعالی ﷻ ارشاددي﴿ وماكان المؤمنون لينفروا كافة فلولا نفر من كل فرقة منهم طائفة ليتفقهوا في الدين ولينذروا قومهم اذا رجعوا اليهم لعلهم يحذرون ﴾ قرآن کریم په دي ځای کي دعلم دین حقیقت اونصاب په یوه لفظ کي ښودلی دی هغه په ﴿ليتفقهوا في الدين﴾کي دتفقه لفظ دی په دي کي اشاره ده چي دعلم دین محض ویل کافی نه دي هغه خودیرکافران یهود اونصاریٰ هم وایي شیطان ته ترټولوزیات حاصل وو بلکه له علم دین څخه مراددین پوهه پیداکول دي همدا دلفظ تفقه ترجمه ده چي دفقه لفظ څخه مشتق دی دفقه معنٰی همداپوهه ده په دي ځای کي یي دمجردوله صیغي څخه﴿ليفقهوا في الدين﴾(یعني چي دین زده کړي) ونه فرمایل بلکه ﴿ليتفقهوا في الدين﴾ یي وفرمایل چي دتفعل له باب څخه ده اوپه معنی کي یي دمحنت اومشقت مفهوم شامل دی مطلب دادی چي ددین په پوهه پیداکولوکي په محنت بزیارکښلوسره مهارت حاصل کړي.

داهم ښکاره خبره ده چي ددین پوهه صرف په دي نشي پیداکیدای چي دطهارت، نجاست یالمانځه ،روژي ،زکوة اوحج مسائلي زده کړي بلکه ددین پوهه دي ته ویل کیږي چي دی په دي پوهه شي چي دده دهرقول اوفعل ،حرکت اوسکون له ده څخه په اخرت کي حساب غوښتل کیږي اوده ته په دي دنیاکي څنګه اوسیدل په کاردي په اصل کي ددي فکرنوم ددین پوهه ده ځکه نوامام اعظم ابو حنیفه رحمه الله دفقه تعریف په

ضرورشوي وي په دي اساس له قارئينو حضراتو څخه گذارش دی چې د﴿ الدين النصيحة ﴾ په نظرکې لرلوسره بنده په غلطيانوضرور خبرکړي ترڅو دهغو اصلاح وکړای شي.

## د حضرت استاذمحترم مولانامحمدزيب صاحب دامت بركاتهم استاذحديث جامعة العلوم الاسلامية علامه بنوري ټاون کراچي قدرمنه رايه

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله رب العلمين والصلوٰة والسلام على اشرف الانبياء والمرسلين وعلى اله وصحبه اجمعين

أمابعد:له قرآن اوحديث څخه وروسته علم فقه اهم علم دی دهمدي علم فقه په ذريعه سره انسان ددنيااواخرت سعادتونه حاصلوی شي په قرآن کريم کې دالله تعالٰی جل جلاله ارشاددي﴿ وماكان المؤمنون لينفروا كافة فلولا نفر من كل فرقة منهم طائفة ليتفقهوا في الدين ولينذروا قومهم اذا رجعوا اليهم لعلهم يحذرون ﴾ قرآن کريم په دي ځای کې دعلم دين حقيقت اونصاب په يوه لفظ کې بنودلی دی هغه په ﴿ليتفقهوا في الدين﴾کې دتفقه لفظ دی په دي کې اشاره ده چې دعلم دين محض ويل کافی نه دي هغه خوډيرکافران يهود اونصارٰی هم وايي شيطان ته ترټولوزيات حاصل وو بلکه له علم دين څخه مراددرين پوهه پيداکول دي همدادلفظ تفقه ترجمه ده چې دفقه لفظ څخه مشتق دی دفقه معنٰی همداپوهه ده په دي ځای کې يې دمجردوله صيغې څخه﴿ليفقهوا في الدين﴾(يعنی چې دين زده کړي) ونه فرمايل بلکه ﴿ليتفقهوا في الدين﴾ يې وفرمايل چې دتفعل له باب څخه ده اوپه معنی کې يې دمحنت اومشقت مفهوم شامل دی مطلب دادی چې ددين په پوهه پيداکولوکې په محنت بزيارکښلوسره مهارت حاصل کړي.

داهم ښکاره خبره ده چې ددين پوهه صرف په دي نشي پيداکيدای چې دطهارت ، نجاست يالمانځه ،روژي ،زکوة اوحج مسائلي زده کړي بلکه ددين پوهه دي ته ويل کيږي چې دی په دي پوهه شي چې دده دهرقول اوفعل ،حرکت اوسکون له ده څخه په اخرت کې حساب غوښتل کيږي اوده ته په دي دنياکې څنگه اوسيدل په کاردي په اصل کې ددي فکرنوم ددين پوهه ده ځکه نوامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله دفقه تعريف په دي شان کړی دی ﴿معرفة النفس مالها وما عليها﴾چې انسان هغه کارونومعلوم کړي دکوموچې کول دده لپاره ضروري دي اوهغه کارونه هم ځان ته معلوم کړي دکوموڅخه چې ځان ساتل ضروري دي.

نن صباچې علم فقه دمسائل جزئيه وعلم ته ويل کيږي داوروستنی اصطلاح ده په قرآن اوسنت کې دفقه حقيقت هغه دی چې امام ابوحنيفه رحمه الله بيان کړی دی چې که کوم شخص ددين کتابونوټول ولولي مګرداپوهه پيدانه کړي هغه دقرآن اوسنت په اصطلاح کې عالم نه دی بلکه صرف فقيه عالم دين دی .په هرحال همدافقه هغه علم دی چې دالله تعالٰی په نزدهم قدرمندی اوبندگانوته يې هم هروقت ضرورت پيښيږي په عربي ژبه کې خوددي علم دومره خزانې جمع شوي دي چې عقل ورته حيرانيږي ليکن داردوژبې لمن تراوسه دعربي په مقابله کې له دي ملغلرواوخزانوڅخه تشه ده که څه هم دفتاوی په موضوع اوهمدا شان داردوشروحاتواوحواشيوڅه غټه ذخيره جمع شوي ده مګريياهم موضوع تږي ده.

دفقه دشروحاتوپه سلسله کې دمحترم وروږمولانانصيب الله صاحب دکتاب تسهيل الحقائق اردوشرح دكنزالدقائق ترچاپ لاندې څوبابونه دنمونې په طوردتقريض لپاره رالیږل شوي دي مختلف ځايونه مې مطالعه کړل الحمدلله له هره اړخه کتاب دانتهائي تحسين اوقدروړده.

غالباًدکتاب ترتيب څه په دې ډول دی (۱) په ښه اوښائسته اردوژبه کې دعربي عبارت ترجمه اوتشريح (۲)دمسائلودپاره مختصردلائل(۳)د(ف) ترعنوان لاندې دمفتی به قول وضاحت اودهغه تخريج (۴)په بعضوځايونوکې دضرورت مطابق دجديدو مسائلواضافه والی اوداسې نورفوائد. ان شاءالله له دې څخه به مدرسينواوطلباءکرامو ته له تسهيل اوتشريح سره سره دمزيدوفوائدواوجزئياتو ذخيره هم په لاس ورشي.

له الله تعالی ﷻ څخه دادعاده چې الله تعالی ﷻ له ښه والي اوښائسته والي سره ددې تكميل وکړي اوزربې دچاپ په ګېنه وپوښي اودمحترم مؤلف خدمت قبول کړي اوهرعام او خاص ته له دې څخه عظيمه نفع ورسوي اوالله تهالى دي مؤلف اومؤلف دواړه دقبوليت په خلعت سرفرازه کړي .آمين يارب العلمين وصلى الله تعالى على خيرخلقه محمدوآله وصحبه اجمعين.

كتبـه محمـدزيب عفـي عنـه جامعـة العلـوم الاسـلامية علامـه بنـوري تـاؤن كراچـي

تاريخ:۲۷/۱/۱۴۳۱هج موافق ۱۴/۱/۲۰۱۰

## دحضرت استاذ محترم مولاناسيدغلام رسول شاه صاحب دامت بركاتهم شيخ الحديث جامعه مركزيه تجويدالقرآن كوټه قدرمنه رايه

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم .دعلم فقه اهميت اوضرورت له يوه هوښيارمسلمان څخه هم پټ نه دی ځکه چې دانسان دعملي ژوندانه دسمون اوښه والي تکفل دعلم الفقه داحسان تربارلاندې دی علم الفقه د «العلم بالاحكام الشرعية العملية عن ادلتها التفصيلية» نوم دی ځرنګه چې همدغه علم دانسان دکاميابي اوکامراني ضامن دی ځکه نبی کريم ﷺ ارشادفرمايلی دی «من يرد الله به خيرا يفقهه في الدين» اوهمدارنګه دحضرت ابن عباس ﷺ ديوه خدمت په بدل کې نبی کريم ﷺ هغه ته دعاوکړه «اللهم فقهه في الدين» دحضرت عمر ﷺ ارشاددی «تفقهوا قبل ان تسودوا» .(رواه البخاری)

څرنګه چې داعلم دډيرواسلامي علماؤډيرمخدوم پاته شوی دی دمختلفوائمه وفقهي مذاهب په ډير اهتمام سره مدون شوي دي اوبياپه هره فقه کې مختلف متون ليکل شوي دي بيادډوئ شروحات ليکل شوي دي بيادمشهوروروایاتو، ظاهرو،متواترو،نادرواوشاذوتعين شوی دی اوپه هره فقه کې مفتیٰ به اوغيرمفتیٰ به اقوال په نښه شوي دي همدارنګه په فقه حنفي کې هم مختلف طويل اومختصر متون ليکل شوي دي دکوموڅخه چې يومتن متين دعلامه نسفي رحمه الله كنزالدقائق دی کوم چې له اختصارسره سره انتهائي جامع هم دی.

ليکن دځيلوعباراتودسختئ له امله هم ډيرمشهوردي ځکه نوپه عربي اردوهره ژبه کې طويل اومختصرهرډول دده شروحات ليکل شوي دي په همدې سلسله کې حضرت مولانانصيب الله صاحب

استاذ جامعه اسلاميه بحرالعلوم سرياب كستم كوټه هم قلم اوچت كړى دى او د تسهيل الحقائق په نوم يې په اردو ژبه كې د كنزالدقائق شرح ليكلي ده كومه چې دبنده په خيال به واقعةً ان شاء الله د دې مشكل متن په تسهيل او تيسير كې ګټوره او مرستندويه وي بنده د دې شرح د څه ځايونو مطالعه وكړه او دا شرح د كتاب د حل علاوه د حديثو او فقهي مباحثو او مسائلو مرقع او ذخيره ورته ښكاره شوه . الله تعالى دې د موصوف دا خدمت د ټولو علماؤ او طالبانو لپاره ګټور او د ده د ټولو متعلقينو لپاره د نجات ذريعه وګرځوي .آمين.

﴿إِنَّمَا الْفَقِيهُ الزَّاهِدُ فِي الدُّنْيَا الرَّاغِبُ فِي الْآخِرَةِ الْبَصِيرُ بِدِينِهِ الْمُدَاوِمُ عَلَى عِبَادَةِ رَبِّهِ الْوَرِعُ الْكَافُّ عَنْ أَعْرَاضِ الْمُسْلِمِينَ الْعَفِيفُ عَنْ أَمْوَالِهِمْ النَّاصِحُ لِجَمَاعَتِهِمْ﴾. (يعنی فقيه هغه دی چې له دنياسره يې مينه نه وي اوداخرت غوښتونكی وي، په خپل دين بصيرت لري، دخپل رب په عبادت باندې هميشه والی كوي، متقي وي، دمسلمانانو عزت اوابروته له ضررر سولو څخه ځان ساتي، دهغوئ له مال اودولت سره تعلق نه لري اودمسلمانانو خيرغوښتونكی وي).

ددې تعريف له نظره په فقه كې درې قسمه احكام شامل دي /**نمبر ١**-هغه احكام چې دهغوئ تعلق له باطني اخلاقو اوعاداتو سره وي لكه له الله تعالی ﷻ اودهغه له رسول ﷺ سره محبت لرل نيت خالص كول وغيره كوموته چې تصوف ويل كيږي./**نمبر ٢**- هغه احكام چې دهغوئ تعلق له عقائدو سره وي لكه دالله تعالی پرذات ،صفتونو اوتوحيدباندې ايمان لرل اوپه رسالت اومعادباندې ايمان لرل وغيره كوموته چې علم كلام ويل كيږي./**نمبر ٣**-هغه احكام چې دهغوئ تعلق له ظاهري اعضاو سره وي لكه لمونځ ، روژه ، حج اوزكوة وغيره ددې تعريف له نظره دفقه موضوع عقائد اودټولو ظاهري اوباطني اعمالو مجموعه ده .

له عهدرسالت څخه وروسته چې كله اسلامي فتوحات ډير شول اولوی لوی متمدن ملكونه تراسلامي حكومت لاندې شول دنورو ملتونو ډيرخلك په اسلام كې داخل شول نوي نوي شيان جوړ شول اونوي حالات اومسائل رامنځته شول ،كوموچې خواب وركول له دليل اوتفصيل سره په فقهاولازم شواوددې په نتيجه كې دمذكورودريوسروقسمونوپه احكامواومسائلوكې ددلائلواو متعلقه مباحثو اضافه كيدله نوددې خبرې ضرورت پيښ شوچې داساني اوسهولت لپاره درې سره قسمه يوله بله جلا اوممتاز مرتب كړای شي نوپه دې ډول علم فقه په دريوعلوموتقسيم شوه اودهرعلم جلاجلا نوم كښيښنودل شو يعنی علم الكلام، علم التصوف، اوعلم الفقه .

**دمتاخرينوتعريف**:كله چې علم فقه له عباداتو ،نكاح اومعاملاتو سره خاصه شوه نو متأخرينو ددې مختلف تعريفونه وكړل مګر مشهورتعريف يې دا دی ﴿هُوَ الْعِلْمُ بِالْأَحْكَامِ الشَّرْعِيَّةِ الْفَرْعِيَّةِ الْمُكْتَسَبِ مِنْ أَدِلَّتِهَا التَّفْصِيلِيَّةِ﴾ (يعنی فقه دهغه فرعي احكامو دزده كړې نوم دی چې له تفصيلي دلائلو څخه مستنبط وي).

**دعلم فقه موضوع** :په كوم علم كې چې دكوم شی له حالاتو اوصفاتو څخه بحث كيږي هغه شی دهغه علم موضوع وي مثلاً په علم طب كې دانسان دبدن له هغه حالاتو څخه بحث كيږي چې دهغوتعلق له روغتيا اوناروغي سره وي په دې لحاظ دعلم طب موضوع دانسان بدن دی . همدارنګه په علم فقه كې څرنګه چې دانسان دظاهري افعالوله څه صفاتو (احكام شرعية) څخه بحث كيږي نولهذا دعلم فقه موضوع دعاقل بالغ انسان ظاهري افعال دي داخبره دعلم فقه دجديداصطلاحي تعريف له نظره ده چې علم كلام اوباطني اعمالوته شامل نه دی .

**دقديم اصطلاحي فقه موضوع**؛څرنګه چې په قديمه اصطلاحي فقه كې نه دعقائدو او اعمالو جلاوالی شته اونه دظاهراو باطن،بلكه دټولوزده كړې ته له دليل څخه علم فقه ويل كيږي نولهذا دعلم فقه موضوع صرف ظاهري اعمال نه دي بلكه عقائد اودټولو ظاهري اوباطني اعمالو مجموعه يې موضوع ده .

**دفقه غرض وغايت**:دفقه غرض اوغايت ﴿الفوز بسعادة الدارين﴾ده يعنى ددنيا اواخرت دنيک بختى په حاصلولو کښې کاميابي .ددنياکاميابي داده چې له علم فقه څخه شرعي احکام معلوم کړي اوپه مأموراتوعمل وکړي اوله منهياتوڅخه ځان وژغوري اوداخرت کاميابي دجنت نعمتونه ترلاسه کول دي.

**دعلم فقه شرعی حکم**:علم فقه زده کول فرض عين هم دې اوفرض کفايه هم، دومره معلومات حاصلول کوموته چې په دين کښې ضرورت پيښيږي فرض عين دی اودخپل ضرورت څخه زيات دنورودنفع دپاره علم حاصلول ترڅونورخلک هم په مأموراتوعمل وکړي اوله منکراتوڅخه ځان وژغوري فرض کفايه دی اوپه دي کښې تبحرحاصلول دټولوانواعو عباداتو اومعاملاتومثلاًطهارت ،لمانځه ،روژې،حج اونکاح وغيره علم حاصلول مستحب دی،له دي ماسوا دچاچې له کومي شعبې سره تعلق وي دهغې شعبې متعلق احکامو زده کول هم ورته ضروري دي ترڅو دهغې شعبې په محرماتوکښې له لويدلو څخه ځان وژغوري .

**دفقه اوفقيه فضائل**:دالله تعالٰى ارشاددی﴿شهد الله انّه لااله الاهو والملٰئكة واولوا العلم قائماً بالقسط﴾ (الله تعالٰى شاهدي ورکوي چې هيڅوک دعبادت لائق نشته ماسواله ده ﷻ څخه اوفرښتي او دعلم خاوندان هم شاهدي ورکوي چې دعبادت لائق نشته ماسواله ده ﷻ څخه )په دي ايت مبارک کښې الله ﷻ له خپل ځان څخه شروع کړي ده اوپه دوهم ځای کښې يې فرښتي ذکرکړي دي اوپه دريمه درجه کښې اهل علم ذکرکړي دي نوداهل علم دښه والی اوبزرګۍ دپاره صرف همدا کافی ده، اوفرمايي ﴿يرفع الله الذين آمنوا منكم والذين اوتوا العلم درجٰت﴾(الله تعالٰى په تاسي کښې دايمان لرونکوکسانو(يعنى مؤمنانو) اودهغوکسانوچې هغوئ ته علم ورکړل شوی دی درجي لوړوي)حضرت ابن عباس ﷺ فرمايي ترعامومسلمانانوبه علماء اوه سوه درجې لوړوي اودهرودوودرجوترمنځ به دپنځه سوه کاله په اندازه فاصله وي .

پيغمبر ﷺ فرمايي : ﴿من يرد الله به خيرا يفقهه فى الدين﴾(يعنى چاته چې الله ﷻ دخيراراده وفرمايي هغه ته ددين پوهه ورکړي )اوفرمايلي يې دي ﴿العلماء ورثة الانبياء﴾(يعنى عالمان دانبياو وارثين دي )ښکاره خبره ده چې ترنبوت لوړه مرتبه نشته اوداهم ښکاره ده چې ددي مرتبې تروراثت لوړکوم بل شرف نشته ،اوفرمايلي يې دي ﴿يستغفر للعالم مافى السمٰوات والارض﴾ (يعني په اسمانواوځمکوکښې چې څه دي دعالم لپاره دمغفرت غوښتنه کوي) تردي لوړبه کوم منصب وي دکوم منصب لرونکوته چې داسمانواو ځمکوفرښتي په مغفرت غوښتلو مشغولي وي ،اوفرمايي :﴿يوزن يوم القيامة مداد العلماء بدم الشهداء﴾(يعني دقيامت په ورځ به دعلماؤسياهي دشهيدانوله وينوسره تلل کيږي) اوفرمايي:﴿فضل العالم على العابد كفضلى على ادنىٰ رجل من اصحابى﴾(يعني دعالم فضيلت په عابدباندي دومره دی لکه څومره چې زمافضيلت زماپه صحابه وکښې په ترټولوکم مرتبه صحابی دی).

ادله تفصيليه چې له هغو څخه فقه اخيستل شوي ده څلور دي ،کتاب الله ، سنت رسول الله ، اجماع امت ، قياس شرعی .

**دکتاب الله تعريف**، کتاب الله که څه هم دڅه پيژندګلوي او تعريف محتاج نه دی ځکه چې دا يوبديهی کلام ده مګردځينو مصلحتونوپه اساس يې دعلم اصول الفقه علماؤ داسي تعريف کړی دی ﴿هو القرآن المنزل على

رَسُولِ اللهِ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ الْمَكْتُوبُ فِي الْمَصَاحِفِ الْمَنْقُولُ عَنْهُ نَقْلاً مُتَوَاتِراً بِلَا شُبْهَةٍ﴾(يعنى قرآن كريم دالله تعالىٰ ﷻ هغه كلام دى چې دالله ﷻ له لوري پرنبى كريم ﷺ نازل شوى دى اوپه مصاحفوكې ليكلى دى اوترموږپوري په تواترسره بغيرله شبهې رانقل شوى دى.

قرآن كريم كه څه هم دفقه مأخذدى مګرټول قرآن نه دى بلكه خاص داحكامو ايتونه دفقه مأخذ دى چې دپنځه سوه ايتونو په شاوخواكې دى.

**دسنت تعريف**: دفقه دوهم مأخذ سنت رسول الله ﷺ دى دسنت لغوي معنى طريقه او عادت ده اودفقهاؤپه اصطلاح كې سنت هغه ته ويل كيږي په كوموچې نبى كريم ﷺ له كله كله پريشودلو سره هميشه والى كړى وي ،مګرداصولينوپه اصطلاح كې دسنت په اطلاق كې پراخي ده لكه څرنګه چې صاحب دنورالانوارداشان تعريف كړى دى﴿السُّنَّةُ تُطْلَقُ عَلَى قَوْلِ الرَّسُولِ ﷺ وَفِعْلِهِ وَسُكُوتِهِ وَعَلَى أَقْوَالِ الصَّحَابَةِ ﷺ وَأَفْعَالِهِمْ﴾(يعنى دنبى كريم ﷺ فعل قول اوسكوت ته سنت ويل كيږي اوهمدارنګه دصحابه كرامو ﷺ اقوالواوافعالوته هم سنت ويل كيږي).

**دسنت حجيت**: دسنتوحجيت په كلام الله ﷻ سره ثابت دى كماقال الله تعالىٰ﴿وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحٰى﴾(يعنى نبى كريم ﷺ په خپله خوښه خبري نه جوړوي دنبى كريم ﷺ ارشادات خالص وحى دي).

**داجماع تعريف**: دفقه دريم مأخذاجماع ده داجماع لغوي معنى عزم اواتفاق كول ده اصولينوداجماع تعريف داسي كړى دى ﴿اِتِّفَاقُ الْمُجْتَهِدِينَ مِنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ ﷺ فِي كُلِّ عَصْرٍ عَلَى أَمْرٍ مِنَ الْأُمُورِ﴾(يعنى دنبى كريم ﷺ دامت دمجتهدينوپه يوه زمانه كې په يوه معامله باندي اتفاق كولوته اجماع ويل كيږي).

له مذكورتعريف څخه څرګنديږي چې اجماع په كومه زمانه ياوخت پسي خاصه نه ده دهري زماني داجتهادڅښتنان په يوه مسئله باندي اتفاق كولى شي اوددوئ دااتفاق به منل كيږي زموږپه نزدصحيح مذهب دادى چې دهري زماني داهل اجتهاداوعدالت لرونكو حضراتواجماع معتبره اوشرعي حجت دى علامه يعقوب اللبنانى ليكي﴿الصَّحِيحُ عِنْدَنَا أَنَّ إِجْمَاعَ عُلَمَاءِ كُلِّ عَصْرٍ مِنْ أَهْلِ الْعَدَالَةِ وَالْاِجْتِهَادِ حُجَّةٌ﴾(يعنى زموږپه نزدصحيح داده چې دهري زماني داهل عدالت او اجتهاداجماع حجت ده).

**حجيت اجماع**: داجماع حجيت له كلام الله ﷻ څخه ثابت دى دالله ﷻ ارشاد دى﴿كَذٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطاً لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ﴾ همداشان ماتاسي ګرځولي ياست غوره امت ترڅوتاسي په خلكوشاهدان جوړشئ).

دپاكستان سابق مفتى اعظم حضرت مولانامفتى محمدشفيع صاحب رحمة الله عليه دقرطبى په حواله ليكلي دي چې داداجماع په حجت والي باندي يودليل دى ځكه چې كله الله تعالىٰ ﷻ داامت شاهدان وګڼل اودنوروامتونوپه مقابل كې يې ددوئ خبره حجت وګڼله نوثابته شوه چې ددي امت (پريوه مسئله )اجماع حجت دى اوعمل پري واجب دى په دي شان چې دصحابه كرامو ﷺ اجماع اودتابعينواجماع په تبع تابعينو حجت ده (معارف القرآن جلد ۱ ص۳۷۳). اودرسول الله ﷺ ارشاددى ﴿إِنَّ اللهَ لَا يَجْمَعُ أُمَّتِي أَوْقَالَ أُمَّةَ مُحَمَّدٍ عَلَى ضَلَالَةٍ﴾(يعنى الله ﷻ زماامت يايې داسې وفرمايل چې دمحمد ﷺ امت په ګمراهى باندي نه جمع كوي).

**دقياس تعريف**: دفقه څلورم مأخذ قياس دى دقياس لغوي معنى اندازه كول ،برابرول ده لكه چې ويل كيږي قاس النعل بالنعل ،هغه څپلى ئې له بلې څپلى سره برابره كړه نوپه قياس شرعي كې هم فرع داصل سره په حكم كې مماثله اوبرابره كيږي . دنورالانوار مصنف يې اصطلاحي تعريف داسې كړى دى ﴿تقدير الفرع بالاصل في الحكم والعلة﴾ (يعنى فرع له اصل سره په حكم اوعلت كې برابرول) .

**حجيت قياس** : دقياس حجيت په كتاب الله ثابت دى دالله ﷻ ارشاددى ﴿فاعتبروا يااولي الابصار﴾ ( يعنى اى ستر ګولرونكواعتبار وكړئ) په دې ايت مبارك كې الله ﷻ دبصيرت څښتنانوته داعتبار كولو حكم كړى دى اوفقهاء كرامو داعتبار معنى داسې كړې ده ﴿ردالشئ الى نظيره اى الحكم على الشئ بماهوثابت لنظيره﴾ يوشى دهغه مثل ته ردول يعنى په يوه شي هغه حكم لګول چې دهغه شي نظيرته ثابت دى .

دحضرت معاذ ﷺ مشهوره واقعه ده چې كله رسول الله ﷺ هغه ديمن والى مقرر كړنود رخصتولوپر وخت يې له هغه څخه پوښتنه وكړه ﴿ بماتقضي يامعاذ؟قال بكتاب الله قال فان لم تجدفى كتاب الله ؟قال فبسنة رسوله قال فان لم تجدفيهما؟قال اجتهد برأى فقال الحمدلله الذى وفق رسول رسوله بمايحب ويرضى﴾(يعنى اى معاذه !كله چې ستامخته كومه معامله اومقدمه وراندې كړاى شي نوپه څه به فيصله كوي؟ نومعاذ ﷺ عرض وكړدالله تعالى په كتاب ،په دې نبى كريم ﷺ وفرمايل كه ته دهغې معاملې حل په كتاب الله كې پيدانه كړې نو ؟ده ﷺ وفرمايل دالله ﷻ درسول په سنت باندې ،نبى كريم ﷺ وفرمايل كه په دواړوكې دهغې معاملې حل پيدانه كړې نو؟ هغه ﷺ عرض وكړ په خپله رأيه سره به اجتهادكوم پردې نبى كريم ﷺ وفرمايل ټول صفتونه هغه ذات لره دي چې هغه دخپل رسول ﷺ رسول ته ددې خبرې توفيق وركړ په كومه چې هغه خوشحاليږي اوهغه خوښوي .

همدارنګه په يوه روايت كې راغلي دي ﴿اذاحكم الحاكم فاجتهد فاصاب فله اجران فان اخطأ فله اجرواحد﴾ يعنى كله چې يوحاكم په كومه معامله كې دحكم كولولپاره اجتهادوكړي اوپه خپل اجتهادكې مصيب وي نوده لره دوه اجره دي اوكه خطاشي نوده لره يواجردى).

**فقه درسالت په زمانه كې**: دنبى كريم ﷺ په زمانه كې دفقه موجوده اصطلاحات نه وو بلكه صحابه كرامو ﷺ به چې له نبى كريم ﷺ څخه څه اوريدل يابه يې نبى كريم ﷺ په څه كولو ليدونودهغه مطابق عمل به يې كاوه مثلاًدنبى كريم ﷺ په څيراودس به يې كاوه دنبى كريم ﷺ په څېرلمونځ به يې كاوه اونبى كريم ﷺ به ضروري خبرې خپله بيانولې مګردرسالت له زمانې وروسته چې كله دصحابه كرامو ﷺ په زمانه كې اسلامي فتوحاتو وسعت وموند اودخلافت دائره په پراخيدو شوه اوصحابه كرام ﷺ دنړۍ په هركونج اوكناركې خپاره شول په كثرت سره حوادث رامخته كيدل نوله دې امله داجتهاداو استنباط ضرورت پيداشومثلاًله يوچاڅخه په غلطۍ سره په لمانځه كې يوكارپاتې شو نودامسئله پيښه شوه چې لمونځ وشو اوكه يا؟اوداخوممكنه نه وه چې دلمانځه ټول اعمال دې فرض وګڼل شي يئ ـى واجب اويادې مستحب وګڼل شي څكه نوصحابه كرامو ﷺ ته داتفريق كول وو چې فلانى عمل فرض دى فلانى واجب يامستحب

دی او همدارنګه فلانی عمل مکروه دی او فلانی حرام دی او دتفریق کولو په تجویز شویو اصولو دټول اتفاق ممکن نه وو ځکه نو اختلاف پیدا شو.

**فقه دصحابه کرامو ﷺ په زمانه کې**: امام شعبی رحمه الله فرمایي: چې دنبی کریم ﷺ په صحابه کرامو ﷺ کې له شپږو صحابه کرامو څخه علم اخیستل شوی دی په دوئ کې حضرت عمر، حضرت عبدالله بن مسعود او حضرت زید بن ثابت ﷺ په علم کې یوله بل سره مشابه وو په دوئ کې ځینو له ځینو نورو څخه اخذ کاوه او حضرت علی، حضرت ابی ابن کعب او حضرت ابوموسي اشعری ﷺ په علم کې یو له بل سره مشابهت درلود او له یو بل څخه یې اخذ کاوه.

دنبی کریم ﷺ له وصال څخه وروسته یو سل دیرش یا یو سل شپیتو صحابه کرامو ﷺ فتوی ورکوله او دهغوئ دري طبقي وي /**نمبر ۱- مکثرین** کوموچې ډیري فتواوي ورکولي هغوئ اوه نفره صحابه کرام ﷺ وو حضرت عمر ﷺ، حضرت علی ﷺ، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ، ام المؤمنین حضرت عائشه ﷺ، حضرت زید بن ثابت ﷺ، حضرت عبدالله بن عباس ﷺ، او حضرت عبدالله بن عمر ﷺ.

**نمبر ۲- متوسطین** کوموچې له مکثرینو څخه لږ فتواوي ورکولي هغوئ دیارلس صحابه کرام وو حضرت ابوبکر صدیق ﷺ، حضرت ام سلمه ﷺ، حضرت انس ﷺ، حضرت ابوسعید خدری ﷺ، حضرت ابوهریره ﷺ، حضرت عثمان بن عفان ﷺ، حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ. حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ، حضرت ابوموسي اشعری ﷺ، حضرت سعدبن وقاص ﷺ، حضرت سلمان فارسي ﷺ، حضرت جابر بن عبدالله ﷺ، حضرت معاذ بن جبل ﷺ.

**نمبر ۳- مقللین** صحابه کرام ﷺ کوم چې له پورته ذکرشویو دواړو طبقو څخه یې لږ فتواوي ورکولي هغوئ نژدې اتلس صحابه کرام ﷺ وو.

**فقه دتابعینو په زمانه کې**: دنبی کریم ﷺ له زمانې څخه بیا دریم خلیفه حضرت عثمان غنی ﷺ دشهادت تر وخته یعنی تر ۳۵هج پورې داسلامي ښارونو او علومو مرکز مدینه منوره وه بیا دحضرت علی ﷺ په زمانه کې کوفه مرکز جوړ شو له هغه څخه مخکې حضرت عمر ﷺ عبدالله بن مسعود ﷺ دکوفې لپاره معلم لیږلی وو هغه ترلسو کالو په کوفه کې تعلیم ورکړ دهغه دفتواؤ ډیره لویه ذخیره غیرمرتبه وه دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ مشهور شاګرد حضرت علقمه بن قیس بن عبدالله ده کوم چې له کبار تابعینو څخه ده دنبی کریم ﷺ په زمانه کې یې دنیاته سترګې غړولې دي او له خلفاء اربعه او نورو صحابه کرامو ﷺ څخه دروایاتو اوریدل ثابت دي له حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه یې قرآن کریم لوستلی دی او فقه یې هم هغه څخه زده کړې ده خپله حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دده په باره کې فرمایي زه چې څه وایم او زده مې دي هغه دعلقمه هم زده دي دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ علم حضرت علقمه ته منتقل شو او هغه یې نوره توضیح او تشریح وکړه حضرت علقمه ﷺ ددري شپیته کالو په عمر له دې فانی نړۍ سترګې پټې کړي.

بیا د حضرت علقمه علم حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله ته منتقل شو حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله په ۵۰ ء کې پیدا شوی دی ده له حضرت علقمه، مسروق او نورو علماء کرامو څخه روایات کړي دي هغه هم د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د علم ښه تنقیح وکړه او په کال ۹۵ یا ۹۶ هج) کې وفات شو.

بیا د حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله تعالیٰ علم حضرت حماد بن سلیمان الکوفی طرف ته منتقل شو او حضرت حماد د حضرت ابراهیم نخعی په فقه کې تر ټولو زیات مهارت حاصل کړ او له دې سره یې له امام شعبی څخه هم فقه حاصله کړه او په کال ۱۲۰ هج) کې وفات شو.

کله چې حضرت حماد وفات شو نو خلکو امام الائمة امام اعظم ابو حنیفه نعمان بن ثابت د هغه ځای ناستی وټاکه نو په دې شان د فقه مذکوره ذخیره دده طرف ته منتقله شوه لیکن څنګه چې د علم فقه دا ذخیره غیر مرتبه وه نو د حضرت امام ابو حنیفه په زړه کې د هغې د باقاعده مرتب او مدون کولو خیال پیدا شو لیکن د کار د سختوالی له امله ده دا هم کار تر خپلي ذاتي رأيې پورې منحصر کول نه غوښتل څکه نو ده د خپلو یو زر شاګردانو له جملې څخه څلویښت کسان د فقه د تدوین لپاره غوره کړل یو فقهي مجلس مشاورت یې جوړ کړ بیا له د غو څلویښتو څخه لس ممتاز کسان غوره کړل او یو بل خصوصي مجلس یې هم جوړ کړ د کومو چې نومونه په لاندې ډول دي.

(۱) حضرت امام ابو یوسف (۲) حضرت امام زفر (۳) داؤد طائی (۴) اسد بن عمرو (۵) یوسف بن خالد تمیمی (۶) یحی بن زکریا بن ابی زائده (۷) حفص بن غیاث (۸) حبان بن مندل (۹) قاسم بن معن (۱۰) امام محمد رحمهم الله تعالیٰ.

علامه علاء الدین الحصکفی فرمایي: الفقه زرعه عبدالله بن مسعود وسقاه علقمه وحصده ابراهیم النخعی وداسه حماد وطحنه ابو حنیفه وعجنه ابو یوسف وخبزه محمد فسائر الناس یأکلون من خبزه وقد نظم بعضهم فقال الفقه زرع ابن مسعود علقمة: حصاده ثم ابراهیم دواس: نعمان طاحنه یعقوب عاجنه: محمد خابزه والآکل الناس. (ردالمحتار: ۱/۳۷).

**طریقه تدوین:** څرنګه چې امام ابو حنیفه د مجلس هر هر ممبر (غړی) ته دا اختیار ورکړی وو چې هغه په ازادانه طریقه سره خپل موقف او رأیه وړاندې کولی شي او د احادیثو، د صحابه و د اثارو، اجماع او قیاس په رڼائې کې په ازادانه طریقه سره خبري کولی شي، په یو ځای کې امام صاحب فرمایلې دي چې ما پخپله دوئ ته دا اختیار ورکړی دی او دوئ مې د دې کار سره عادت کړي دي چې د چا تر رعب لاندې رانه شي او د یو بل په دلائلو حتیٰ زما په دلائلو نکته چیني او تنقید وکړي تر څو خبره بالکل صافه او ښه واضحه شي له بحث او څیړنې وروسته چې به په کومه مسئله د ټول اتفاق راغی نو د هغې د لیکلو حکم به یې ورکاوه علامه ابن عابدین شامی فرمایي: روی الامام ابو جعفر الشیر اماذی عن شقیق البلخی انه کان یقول کان الامام ابو حنیفه من اورع الناس واعبد الناس واکرم الناس واکثرهم احتیاطا فی الدین وابعدهم عن القول بالرأی فی دین الله عز وجل وکان لا یضع مسئلة فی العلم حتی یجمع اصحابه کلهم علی موافقتها للشریعة قال لابی یوسف او غیره ضعها فی الباب الفلانی اه کذا فی المیزان للامام الشعرانی قدس سره ونقل ط عن مسند الخوارزمی ان الامام اجتمع معه الف من اصحابه اجلهم وافضلهم اربعون قد بلغوا حد الاجتهاد فقربهم وادناهم وقال لهم انی الجمت هذا الفقه واسرجته لکم فاعینونی فان الناس قد جعلونی جسرا علی النار فان المنتهی لغیری واللعب علی ظهری فکان اذا وقعت واقعة شاورهم وناظرهم وجاورهم وسألهم فیسمع ما عندهم من الأخبار والآثار ویقول ما عنده ویناظرهم شهراً او اکثر حتی یستقر آخر الاقوال فیثبته ابو یوسف حتی اثبت الاصول علی هذا المنهاج شوری لانه تفرد بذلک کغیره من الائمة. (ردالمحتار: ۱/۵۰)

خلاصه دا چې فقه حنفي صرف ديوه شخص رأيه نه ده بلکه د څلويښتو جبال العلم د شورىٰ مرتب کړل شوى قانون دى او ترکله به چې کومه مسئله دښه تحقيق او تفتيش له مراحلو تيره نه شوه نو ده به دهغي له ليکلو څخه منع کوله او کله چې به د شورى ټولو ملګرو په يوه مسئله اتفاق وکړنو بيا به ليکل کيدله او که به ډيرو ختر ځيني ملګري په خپلو رأيو قائم وو نو د ټولو اقوال به ليکل کيدل د فقه د تدوين دا عظيم کار د پنځه ويشتو کالو په موده کې پاى ته ورسيدو دا امام ابو حنيفه اخيري عمر د بغداد په بندي خانه کې تير شو هلته هم دا کار په تسلسل سره روان وو د دې تيارې شوې فقهي مجموعې د مسائلو تعداد دولس لکه نيوى زره شودل کيږي ځيني يې شپږ لکه او ځيني يې پنځه لکه بيانوي او ويل کيږي چې په دې کې اته ديرش زره مسائل له عباداتو سره تړاو لري او باقي له معاملاتو سره متعلقي دي.

دفقه حنفي په باره کې علامه سيد محمد يوسف البنوري نور الله مرقده ليکي: يكفى لمزية مذهبه وفضل شخصيته ماجمع الله له من اعوانه وانصاره صفوة اهل عصره من اصحابه الفقهاء المحدثين وذالك مايحدثنا الخطيب فى تاريخه بسنده عن ابن كرامة قال كنا عند وكيع يوما فقال رجل: اخطا ابو حنيفة فقال وكيع: كيف يقدر ابو حنيفة يخطى؟ ومعه مثل ابو يوسف وزفر فى قياسهما، ومثل يحى بن ابى زائده وحفص بن غياث وحبان ومندل فى حفظهم الحديث، والقاسم بن معن فى معرفته باللغة والعربية، وداؤد الطائى وفضيل بن عياض فى زهدهما وورعهما، ومن كان هؤلاء جلساؤه لم يكد يخطى لانه ان اخطار ذوه اه، وحكاه ابن شيبه السندى وزاد فى روايته وحمزة الزيات وعافية الازدى فى القرآن الخ وعند ابن العوام بالاسانيد الصحيحة. (معارف السنن: ٣/٢٦٣).

**دفقه حنفي دمقبوليت وجوهات:** په ټوله دنيا کې دفقه حنفي دمقبوليت وجوهات په لاندې دول دي (۱) دفقه حنفي مسائلې په حکمتونو او مصلحتونو له بنا سره سره له روايت او درايت سره عين مطابقي دي (۲) فقه حنفي دنورو ټولو فقهو په نسبت اسانه او يسير العمل ده (۳) دفقه حنفي دمعاملاتو په برخه کې وسعت استحکام او باقاعده والى کوم چې دتمدن لپاره ډير ضروري ده تر ټولو فقهو زياته ده (۴) فقه حنفي غير مسلمانان او سيد ونکو ته په ډيره فياضي او ازادى سره حقوق ور بخښلي دى له کوم څخه چې دبادشاهي په نظم کې ډيره اساني پيدا کيږي (۵) په منصوصي احکامو کې چې امام ابو حنيفة کوم طرز غوره کړى وي هغه عموما ډير قوى او مدلل وي (۶) دخليفه هارون رشيد په زمانه کې امام ابو يوسف قاضي شو په عراق ، خراسان او ماوراء النهر کې د حنفي فقه مطابق فيصلې کولې له دې وجې فقه حنفي ډيره مشهوره شوه.

**طبقات الفقهاء:** داحمد بن سليمان چې لقب يې شمس الدين دى او په ابن کمال باشا مشهور دى دتصريح مطابق فقهاء ټول اوه طبقې دي.

**نمبر ۱- مجتهدين مطلق يامجتهدين فى الشرع:** ددې طبقې اطلاق په هغو حضراتو ائمه وکيږي کوم چې به مستقيمًا له ادله اربعه ؤيعني (قرآن ،سنت،اجماع او قياس ) څخه اصول،کليات ، جزئيات او احکام مستنبطول لکه حضرات ائمه اربعه (يعني امام ابو حنيفه ،امام مالک،امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهم الله تعالى ) او داسي نور د دوئ د درجې مجتهدين مثلا امام ثوري،امام اوزاعي،او ابن ابى ليلى وغيرهم.

**نمبر ۲- مجتهدين منتسبين يامجتهدين فى المذهب:** دا دهغو فقهاؤ نوم دى کوم چې په قواعدو او کلياتو کې دخپل استاد او مجتهد مطلق پابند وي مګر په جزئياتو او فرعي مسائلو کې دخپل استاد تقليد نه

کوي داحضرات که څه هم له ادله اربعه څخه دبراه راست استفادي صلاحیت لري مګرپه اکثرو اصولوکي دخپل امام دتقلیدله امله دوئ دمجتهدین فی المذهب په تولی کي راځي مجتهدمطلق نه ورته ویل کیږي مثلاً امام ابویوسف ،حضرت امام محمداودامام ابوحنیفه نورتکړه شاګردان.

**نمبر ۳- مجتهدین فی المسائل** :په مذهب کي څه مسائلي داسي هم وي چي دهغو په باره کي له اصحاب مذهب څخه څه صراحت نه وي نقل شوی نوکوم حضرات فقهاء چي دمذهب دقواعدواو ضوابطوپه نظرکي لرلوسره دغیرمنصوصو مسائلودحکم تعین کوي هغوئ ته دمجتهدین فی المسائل لقب ورکول کیږي داحضرات په اصولویافرعویوه شی کي هم له خپل امام څخه دجلالاري دغوره کولوحق نه لري.ددي طبقي په حضراتوکي دامام احمدبن عمرخصاف،امام ابوجعفراحمدبن محمد الطحاوی،امام ابوالحسن الکرخی،شمس الائمه عبدالعزیز الحلوانی،شمس الائمه محمدبن سهل السرخسي،علامه فخرالاسلام علی بن محمدبزدوی اوعلامه فخرالدین حسن بن منصور المعروف بقاضی خان نومونه قابل ذکردي.

**نمبر ۴- اصحاب التخریج** : هغه فقهاء کرام چي داجتهادصلاحیت خونه لري لیکن داصولواو مأخذونو دحفظولوپه اساس دومره قدرت لري چي دذووجهین یامجمل قول تعین اوتفصیل وکړای شي اودنظائر فقهیه اوقواعدمذهب په نظرکي لرلوسره خپله ذمه واری سرته ورسوي نوهغوئ داصحاب تخریج په نامه یادیږي ددي طبقي په خلګوکي دامام احمدبن علی بن ابوبکرالجصاص الرازی اودده په مثل دنوروحضراتونومونه اخیستلی شو.

**نمبر ۵- اصحاب الترجیح** : ددي طبقي دفقهاؤ کاردادی چي دوئ په مذهب کي بعضوروایاتوته په بعضونورو باندي دخپل قول هذا اولی، هذااصح،اوهذااوضح وغیره کلموپه ذریعه سره ترجیح ورکوي علامه ابن کمال باشاله دي طبقي سره په نسبت درلودونکوکي امام احمدبن محمدبن احمدابوالحسن القدوری اوصاحب هدایه علامه علی بن ابوبکرالمرغینانی شمارکړي دي.

**نمبر ۶- مقلدین اصحاب تمییز**:ددي حضراتوکارصرف دومره ده چي دوئ دمذهب دمضبوطواو کمزورو روایاتوفرق اوامتیاز کوي اوظاهرالروایة ،ظاهرمذهب اوروایات نادره ورمعلوم وي .اکثر اصحاب متون له دي طبقي سره تړاولري مثلاًصاحب کنزالدقائق علامه عبدالله بن احمدالنسفی او صاحب مختارعبدالله بن محمودالموصلی اوصاحب وقایه تاج الشریعة محمودبن صدرالشریعة اوصاحب مجمع الانهراحمدبن علی المعروف بابن الساعاتی وغیره داحضرات په خپلوتصنیفاتوکي دمردودواو غیرمعتبرو اقوالوله نقل کولوڅخه احترازکوي.

**نمبر ۷- غیرممیزمقلدین** : کوم حضرات چي دتیروشووطبقوڅخه دیوي ذمه واری داخیستلواهلیت هم نه لري هغوئ په اومه طبقه کي دي په حقیقت کي داخلک فقیه نه دي بلکه محض دفتاواوو ناقلین دي دنن صباداکثرومفتیانوتعلق له همدي طبقي سره ده ځکه نوددي طبقي په خلګوپوره احتیاط لازم ده ترڅوچي مسئله بنه منقحه نشي ترهغوبایددوئ له ځواب ورکولوڅخه ځان وساتي.

مګرپه پورته ذکرشوی تقسیم وروستنیو فقهاوو اشکالونه کړي دي چې ابن کمال باشا دځینو فقهاوو درجه کښته کړي ده اوځینویې لوړه کړي ده مثلاً امام ابویوسف او امام محمد په مجتهدفی المذهب کې شمارل صحیح نه دی ځکه چې په دوئ کې دمطلق اجتهادصلاحیت وو اودوئ درجه که ترامام مالک اوشافعی پورته نه ده نوکښته هم نه ده او دوئ په اصولواوفرعودواړوکې له امام ابوحنیفه سره اختلاف کړی دی تردې چې امام غزالي په خپل کتاب المنخول کې فرمایې چې امام ابویوسف اوامام محمدله امام ابوحنیفه سره د ده دمذهب په دوثلثو کې اختلاف کړی دی .

دابن کمال باشاد امام خصاف،امام طحاوی اوامام کرخی په باره کې داوینا چې هغوئ په فروعو اواصولو هیڅ شی کې هم دامام صاحب څخه مخالفه رأیه نشي غوره کولی دواقعي څخه خلاف ده هغوئ په ډیرومسائلوکې له امام صاحب څخه خلاف رأیه غوره کړي ده .

امام ابوبکرجصاص رازی په دې تقسیم کې له درجې داجتهادڅخه بالکل ایستل شوی دی داله نوموړي سره ډیرلوی ظلم دی چې دهغه نه اندازه دهغه له بلندپایه علمی اوفقهی تصنیفاتوڅخه لګول کیدای شي اوشمس الائمه حلوانی وغیره کوم چې ابن کمال باشاپه مجتهدینو کې شمارکړي دي هغوئ ټول دابوبکر جصاص دشاګردانوشاګردان دي په دې تقسیم کې صاحب هدایه اوامام قدوری په اصحاب تخریج کې اوقاضی خان په مجتهدینوکې شمارشوی دی حال داچې ددوئ دواړودرجه په هرحال کې له قاضی خان څخه لوړه ده .

حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی دفقهاؤو دري طبقي بیان کړي دي

**نمبر ۱- مجتهدمطلق مستقل** :یعنی هغه شخص چې په فقاهت نفس ،سلامتی طبع ،بیدار مغزی ددلائلوپه معرفت داستنباط په صلاحیت اوپه جزئیاتوکې تعمق په مثل په لوړوصفاتومتصف وي لکه حضرات ائمه اربعه.

**نمبر ۲-مجتهدمطلق منتسب** :یعنی هغه مجتهدکوم چې په ائمه متبوعینو کې یوه ته منسوب وي لیکن هغه په مذهب اودلیل کې دهغه امام مقلدصرف نه وي بلکه محض په اجتهادکې دخپل امام دطریقې په اختیارولوسره دهغه نسبت هغه مذهب ته کیږي لکه امام ابویوسف امام محمد اودامام ابوحنیفة نورتکړه شاګردان.

**نمبر ۳- مجتهدفی المذهب**: دهغه کس ته ویل کیږي چې دیوه امام پابندوي مګرله دي سره سره دخپل امام دمقررو اصولواوضوابطوپه دائره کې دننه ددلیل په رڼا کې دخپلواصولو دمقررولو صلاحیت هم لري ترڅود غیرمنصوصو مسائلو دحکمونوپه تعین کې اساني وي اوددموقع مطابق دضرورت وغیره خیال ساتلی شي په داسې شخص کې دالاندنی صفات ضروری دي (۱)دمذهب په اصولوبه علم لري(۲)په تفصیلی دلائلوبه علم لري(۳) قیاس اودمعانیوپه ادراک به پوره بصیرت لري (۴)دخپل امام په اصولوبه دتخریج اواستنباط صلاحیت اومهارت لري ، په دې طبقه کې ډیرعلماء اوفقهاء شاملیدای شي اوتقریباًپه هره زمانه څه ناڅه خلک دغه صلاحیت لرونکي موجودوي. حضرت شاه صاحب دمجتهدمطلق په

دو درجو كولو سره دحضراتو صاحبينو په درجه پيدا شوي سوال بالكل ختم كړ او همداسي يې داصحاب التخريج او ترجيح تحديد ختم كړ ځكه چې دفقهاؤ دكار مختلف دولونه دي ديوي طبقي خلك په يو ځاى كې دتخريج كاركوي او په بل ځاى كې بيا دترجيح خدمت هم سرته رسوي او كله كله په دوئ كې داجتهادشان هم څرګنديږي. (ملخص از فتوى نويسي كى رهنما اصول ص ۵۰ تر ۵۵).

**دفقهاؤ يو بل تقسيم** : دحنفي مذهب بعضو مؤرخينو دفقهاء مذهب دري طبقي بيان كړي دي. **نمبر ۱- سلف**: له دې څخه دصدر اول دمذهب فقهاء مراد دي كوم چې له امام ابوحنيفة رحمه الله څخه شروع او په امام محمد رحمه الله ختميږي. **نمبر ۲- خلف**، له خلفو څخه مراد هغه فقهاء دي چې له امام محمد رحمه الله څخه وروسته شروع كيږي او په امام شمس الائمه الحلواني رحمه الله باندې ختميږي. **نمبر ۳- متاخرين** : له دوئ څخه هغه فقهاء مراد دي چې له شمس الائمه څخه شروع كيږي او په حافظ الدين محمد بن نصر ابو الفضل ختميږي.

ليكن دا تقسيم متفق عليه نه دى بلكه دبعضونوروپه نزد متقدمين هغه دي چې كومو دائمه ثلاثه (امام ابوحنيفة امام ابويوسف او امام محمد رحمهم الله) زمانه پيدا كړي وي او متأخرين هغه دي كوم چې دائمه ثلاثه له زماني وروسته دي دغه وجه ده چې له شمس الائمه الحلواني څخه په مخكې علماء باندې هم په كثرت سره دمتأخرينو اطلاق كيږي.

**طبقات المسائل** :لكه څرنګه چې علماء كرامو فقهاء په څو طبقو ويشلي وو همداسي يې دمذهب مسائلي هم تقسيم كړي دي تر څو دتعارض په وخت كې مفتي ته داعلى درجى مسئلو ته په ادنى درجى مسئلو ترجيح وركول اسانه وي چنانچه دمذهب مسائلي په درو طبقو ويشلي شوي دي.

**نمبر ۱- مسائل اصول يا ظاهر الرواية** :دا هغه مسائلي دي چې له اصحاب مذهب څخه په ظاهرالرواية كتابونو كې نقل شوي وي ظاهر الرواية دامام محمد شپږ كتابونه دي الجامع الصغير، الجامع الكبير، السير الصغير، السير الكبير، المبسوط او الزيادات، دغو مسائلو ته ظاهر الرواية په دې وجه ويل كيږي چې له امام محمد څخه ثقه راويانو نقل كړي دي كوم چې دتواتر يا شهرت درجى ته رسيږي دمسائلو دا درجه تر ټولو لوړه او قوي ده.

**نمبر ۲- غير ظاهر الرواية يا رواية النوادر** :دا هغه مسائلي دي چې د امام محمد په دغو مذكوره شپږو كتابونو كې نه وي بلكه دامام محمد په نورو كتابونو كې ذكر شوي وي لكه كيسانيات (دا دهغه مسائلو مجموعه ده دامام محمد رحمه الله شاګرد سليمان بن شعيب روايت كړي دي ) هارونيات( دا هغه مسائل دي چې امام محمد رحمه الله دهارون رشيد په زمانه كې جمع كړي دي )جرجانيات (دا هغه مسائل دي چې امام محمد په جرجان كې جمع كړي دي )رقيات (دا هغه مسائلي دي چې امام محمد درقه په ښاركې دقضاوت په دوران كې مدوني كړي دي ) همدارنګه دامام ابويوسف امالي او دحسن بن مجرد او نورروايات مفرده متفرقه چې له محمد بن سماعة،معلى بن منصور او هشام بن رستم وغيره څخه مروى دي دا هم غير ظاهر الروايات مسائل دى د دي طبقي دروايا تو درجه له ظاهر الرواية څخه كمه ده نو لهذا كه ددوئ تعارض له ظاهر الرواية سره راغى نو ظاهر الرواية ته به ترجيح وركول كيږي.

**نمبر ۳- الفتاوی یانوازل یاواقعات**: داهغه مسائلي دي چې دهغومتعلق په ظاهرالروایة اونادر الروایة کې له متقدمینو اهل مذهب څخه کوم حکم شرعی نه وي نقل شوي اوورستنیوعلماؤو دمجتهدینو داصولوپه رڼا کې دهغواستنباط کړی وي.

حضرت شاه ولی الله فرمایي چې داحنافودمسائلوڅلورطبقي دي.

**نمبر ۱- ظاهرمذهب**: یعنی هغه مسائلي چې له اصحاب مذهب څخه په مشهوره اومعروفه طریقه روایت شوي وي دغه مسائلي فقهاء په هرحال کې قبلوي.

**نمبر ۲-روایات شاذه**: یعنی هغه مسائلي کومي چې له اصحاب مذهب څخه په شاذ روایتونو منقولي وي دغه روایات فقهاء په هغه وخت کې قبولوي کله چې له ظاهرمذهب سره برابروي.

**نمبر ۳- تخریجات متاخرین (متفقه)**: یعنی هغه مسئلي دکوموتخریج کارچې اصحاب مذهب نه بلکه متأخرینوکړی وي اوجمهورفقهاؤ پري اتفاق کړی وي په دي قسم تخریجاتوپه هرحال کې فتواورکول ضروري ده له دوئ څخه صرف نظرنشي کیدلای.

**نمبر ۴- تخریجات متاخرین (مختلف فیه)**: یعنی دمتأخرینوداسي مستخرجي مسائلي په کوموچې جمهوراهل مذهب متفق نه وي دامسئلي په اصول مذهب،ظاهرمذهب،نظائرمذهب اودسلفوپه تصریحاتوعرض کیږي که له هغوئ سره موافقي وي نودقبول وړدي اوکه مخالفي وي نوپرېښودل کیږي به. (ملخص ازفتوی نویسی کی رهنمااصول)

**دمذهب په روایاتوکې دترجیح اصول**: که په مسئله کې مختلف روایات راغلي وو نوپه هغو دترجیح اصول په لاندي ډول دي. الف: که امام صاحب اوصاحبین په یوه ځواب سره متفق وو نودعرف اوضرورت ماسوا یوه مقلدته هم له دي متفقه مسئلي څخه دعدول اجازه نشته.

ب: دامام صاحب سره که له صاحبینوڅخه یوهم متفق وو نوپه دي صورت کې هم دامام صاحب قول راجح دی.

ج: که دامام صاحب اوپه صاحبینوکې دهریوه قول جلاجلاوو نوبیابه هم دامام صاحب قول ته ترجیح ورکول کیږي.

د: که امام صاحب یوطرف ته اوصاحبین دواړه بل طرف ته وو نوپه دې صورت کې عبدالله بن مبارک مطلقادامام صاحب دقول دترجیح خبره کړې ده اوبعضوپه دې صورت کې مفتی ته مطلقااختیار ورکړی دی که مجتهدوي اوکه نه وي اوحضرات محقیقینو داتحقیق کړی دی چې که مفتی مجتهدوو نوده لره اختیارشته اوکه مفتی غیرمجتهدوو نوهغه به دخپل امام پابندوي دااخری رأیه په اصل کې داولي اودوهمي رأي په منځ کې دتطبیق یوشکل دی چې دعبدالله بن مبارک قول له مفتی غیرمجتهد سره متعلق دی اود بعضونوروقول په مفتی مجتهدپسي خاص دی په داعتباربه په دواړوقولونوکې تعارض رانشي ځکه چې ددواړه محمل جلاجلا دی داټول تفصیل هغه وخت دی چې ورستنیو مشائخو دکوم ضرورت

یاغیره په بنیاد دصاحبینو یابل چاپه مسلک فتوانه وي ورکړي اوکه یې فتوا ورکړي وه لکه په ظاهرعدالت دقضانه کولو مسئله نو بیا به دمشائخو په ترجیحاتو عمل کیږي . (ازفتوی نویسي کي رهنمااصول)

په عباداتو کې دامام ابوحنیفة رحمه الله قول عموماراجح ګڼل کیږي الاکه چیري دامام صاحب په کوم مرجوع عنه قول مشائخو دفتوی صراحت کړی وو اوامام ابویوسف رحمه الله څرنګه ترديره وخته په منصب قضاباندې فائزوو په کوم کې چې ده ته زیات مهارت حاصل ده ځکه نو په قضا او دهغې په متعلقاتو دامام ابویوسف قول ډیرمعتبرګڼل کیږي اوپه توریث ذوی الارحام اوتولونشه لرونکوشرابو کې به دامام محمد رحمه الله په قول فتوی ورکول کیږي اوکه له یوه امام څخه په یوه مسئله کې مختلف روایات منقول وي نو کوم روایت چې ددلیل په اعتبارډیرمضبوط وي نوهغه به غوره کیږي .

**دمتاخرینو په روایاتو کې دترجیح اصول**:له ائمه مجتهدینو څخه چې کله دیوي مسئلي په باره کې کوم صریح روایت منقول نه وي اودمتأخرینورأیې هم مختلفي وي نوضابطه داده چې اکابرفقهاء متأخرین مثلاامام طحاوی، ابوحفص کبیر اوابوالليث سمرقندی وغیره اکثریت چې دکوم حکم طرف ته مایل وي نو په هغه به فتوی ورکول کیږي .

اوله اصول ترجیح څخه داهم ده چې په کوم قول باندې متون متفق وي نه هغه معتمدعليه وي ځکه چې علماء صراحت کړی دی چې که دمتن دمسئلي اودفتاوی دمسئلي ترمنځ تعارض وي نو دمتن مسئلي ته به ترجیح ورکول کیږي اوهمداشان که که دشروحاتواوفتاوی دمسئلوترمنځ تعارض وونو دشروحاتو مسئلي ته به ترجیح ورکول کیږي .

دمتأخرینو په اصطلاح کې چې کله دمتون لفظ ویل کیږي نوله دي څخه صرف دمتونو معتبر کتابونه مرادیږي دکوموچې نومان دادي هدایه ، مختصرالقدوری ،مختارالنقایه، وقایه، کنزالدقائق ، ملتقی الابهر، مجمع الانهر، اوتحفة الفقهاء اوله متون ثلاثه څخه وقایه ، کنزالدقائق اومختصرالقدوری مراددي .

**الفاظ تصحیح**: دکوم قول دتصحیح دپاره فقهاء مختلف الفاظ لیکي مثلانمبر ۱ـ عليه عمل اليوم، عليه عمل الامة ، نمبر ۲ـ عليه الفتوى، به يفتى، عليه الاعتماد، به ناخذ، هوفتوى مشائخنا، هوالمختارفي زماننا، نمبر ۳ـ الفتوى عليه هوالاصح، هوالاشبه، هوالاوضح، هوالاظهر، هوالاحوط، هوالاوفق ، نمبر ۴ـ هوالاحتياط، هوالصحيح په دوئ کې اول قسم اودوهم قسم الفاظ زیات مؤکددي له دوئ وروسته ددریم اوڅلورم درجه ده دتعارض په وخت کې عموماددي ترتیب لحاظ کیږي اوکه تعارض نه وي نو محض تصحیح کافی ده . (فتوی نویسي کی رهنمااصول)

**څیني فقهی اصطلاحات**:احکام شرعیه په پنځه قسمه دي .

**نمبر ۱ـ فرض** ۱ـ فرض هغه حکم ته ویل کیږي چې له داسي قطعی دلیل څخه ثابت وي چې په هغه کې دشک اوشبه ګنجایش نه وي لکه دپنځه وخته فرض لمنځونو دفرضیت حکم چې له قرآن اواحادیثو څخه ثابت دی اوهمداشان دزکوة روژي اوحج عبادتونه دي .

**دفرض حکم** : کوم شی چې فرض وي دهغه حکم دادی چې په هرمکلف شخص باندې لازمه ده چې دهغه شی فرضیت دزړه له کومي ومني اوپه هغه عمل وکړي نوکه کوم شخص دهغه شی له فرضیت څخه انکاروکړي

نودي شخص ته كافرويل كيږي اوكه كوم شخص په زړه كې دهغه شي دفرضيت عقيده ولري مګرعمل نه پري كوي نوده ته فاسق ويل كيږي اودسخت عذاب مستحق ګرځي .

**شرط اورکن**: بعض وختونه فرضوته شرط ويل كيږي اوبعض وختونه فرضوته ركن ويل كيږي ددي تفصيل دادى چې كه فرض دمقصودشي په ذات كې داخل نه وو نوده ته شرط ويل كيږي اوكه فرض دمقصودشي په ذات كې داخل وو نوده ته ركن ويل كيږي داخبره له دمثاله په اساني سره فهميداى شي چې طهارت دلمانځه لپاره فرض ده مګرطهارت په لمانځه كې داخل نه ده نوده ته به شرط وايو اوهمداشان ركوع اوسجده په لمانځه كې فرض دي اوركوع اوسجده دلمانځه په ذات كې داخل دي نولهذاركوع اوسجدي ته به ركن وايو.

دفرضودوقسمونه نورهم شته ،فرض عين اوفرض كفايه

**فرض عين** : فرض عين هغه حكم ته ويل كيږي چې دهغه كول په هرمكلف شخص لازمي وي اودبعضو خلكوپه كولوسره دنوروذمه واري نه ختميږي لكه فرض لمنځونه اودرمضان روژي

**فرض كفايه**: فرض كفايه هغه حكم دى چې دهغه كول په ټولوخلكوفرض وي ليكن په داسي دول چې كه بعض خلك هغه كاروكړي نودبقيه خلكوذمه واري هم ختميږي اوكه يوشخص هم هغه كارونه كړي نوټول به ګناهګارشي ددي په مثال كې ډيرحكمونه وراندي كولى شوپه كوموكې بعض خالص ديني احكام دي اوبعض دونيوي اوبعض ديني هم اودنيوي هم دي .

دخالص ديني حكم مثال مړي ته غسل وركول ،په هغه دجنازي لمونځ كول اودمړي تدفين كول اوهمداشان دقرآن كريم ساتنه داټول فرض كفايه دي اوددنيوي حكم مثال لكه هغه صنعتونه كول كوموته چې دخلكوضرورت پيښيږي مثلا زراعت كول وغيره وغيره داټول فرض كفايه دي اودهغه حكم مثال چې ديني هم وي اودنيوي هم وي لكه امربالمعروف اونهى عن المنكر يعني دښوكارونو دكولو حكم وركول اوله بدوكارنو څخه راګرزول دافرض كفايه دي همداشان دالله تعالى ﷻ په لاره كې جهادكول ترڅو چې داميرله لوري عام اعلان نه وي كړل شوى فرض كفايه دى اوهمداشان دوبيدونكى بچاوول اواورمړكول داټول فرض كفايه دي .

**نمبر ۲-واجب**: داهغه حكم دى چې له دليل ظنى څخه ثابت وي دليل ظنى له قطعي دليل څخه كمزورى وي ياخوله دي وجهى چې خپله دده په ثبوت كې شبه وي اويادهغه دليل پرفرضيت دحكم باندى شبه وي مثلا وترلمونځ واجب دى فرض نه دى دوترودليل چې كوم حديث دى هغه خبرواحد دى ځكه نودادليل دومره مضبوط نه دى لكه څومره چې دليل قطعي مضبوط وي لهذاله دي دليل څخه ثابت شوى شى ته به فرض نه بلكه واجب ويل كيږي .

**دواجبوحكم**: دواجبوحكم دادى چې په هرمكلف باندي يې كول لازمي دي ليكن په زړه كې ددي لزوم عقيده لرل ضروري نه ده ځكه چې داله دليل ظني څخه ثابت ده اوداعتقادلزوم له قطعي دليل څخه ثابتيږي نودواجبو انكاركونكي ته كافرنشي ويل كيداى.

واجب هم په دوه قسمه دي واجب عين واجب كفايه.

**واجب عين**: واجب عين هغه دي چې كول يې په هرمكلف ضروري وي لكه وترلمونځ اوصدقه فطرداختر لمونځ اوقرباني

**واجب كفايه**، واجب كفايه هغه دي چې كول يې په هرمكلف ضروري وي ليكن په داسې ډول چې دبعضوپه كولوسره دټولوغاړې خلاصيږي البته ثواب صرف كونكوته وركول كيږي مګركه ټولوهغه كارپرېښودنو بياټول ګناهګاردي ددې مثال دادی چې كه ډيروخلكوته څوک سلام وراواچوي نودسلام ځواب وركول په هريوه ضروري دی ليكن كه يوځواب وركړي نودټولوله ذمې څخه واجب ختم شوالبته ثواب صرف ځواب وركونكې ته وركول كيږي.

**نمبر ۲- سنت**: سنت هغه حكم ته ويل كيږي چې زموږله ګران اومحبوب پيغمبرمحمد ﷺ څخه ثابت وي.

سنت هم پردوه قسمه دي سنت مؤكده، سنت غيرمؤكده

**سنت مؤكده**: هغه حكم دی چې په هغه نبی كريم ﷺ هميشه عمل كړی وي اوخلكوته يې هم په هغه دعمل كولوترغيب وركړی وي مثلاً داوداسه په شروع كې مسواک وهل، دجمعې په ورځ غسل كول، په جمع لمونځ كول، اوشل ركعته تراويح كول. دسنت مؤكده حكم دادی چې كونكی ته ثواب وركول كيږي اوپه نه كولويې ګناه نشته ليكن پرېښودنكی يې دكراهت تنزيهي مرتكب ګرځي په دي معنی چې دستومؤكده پرېښودل دحراموپه نسبت حلالوته ډيرنژدې ده البته ددي له پرېښودلوڅخه ځان ساتل په شريعت كې مطلوب دی اوكول يې اتمام دين دی اوبلاعذرپرېښودل يې ګمراهي ده.

**سنت غيرمؤكده**: دې ته مندوب اومستحب هم ويل كيږي داهغه عمل دی چې نبی كريم ﷺ په بعضووختونه كې كړی وي اوخلكو ته يې ترغيب هم وركړی وي لكه داوداسه په وخت كې قبلې ته مخ ګرځول اوداذان په وخت كې دكاراو خبروموقوفول داذان داوريدو لپاره اود مؤذن ځواب وركول په هغوالفاظوسره چې هغه يې وايي اوهمداشان داوداسه اعمال له راسته طرفه كول اوكالي له راسته طرفه اغوستل اوله داسې ټولی سره چې په عمراو درجوكې سره برابره وي له راسته طرفه مصافحه كول اوكه دمختلفودرجو خلک وونوله افضل څخه شروع كول دسنت غيرمؤكده حكم دادی چې كونكی يې دثواب مستحق جوړيږي اوپرېښودونكي يې ګناهګارنه دي كه څه هم هغه په خپله خپل ځان له غټ خيراواجراوفضيلت څخه محروم كړی دی.

دسنتودوقسمونه نورهم شته سنت عين، سنت كفايه

**سنت عين**: سنت عين هغه دي چې كول يې دهرمكلف لپاره مسنون وي لكه دلمانځه سنتونه، دجمعې غسل، داخترغسل، اودلمانځه وروسته اذكار.

**سنت كفايه**: سنت كفايه هغه سنت دي كول يې دهرچالپاره سنت وي ليكن كه بعض خلک په هغه عمل وكړي نودنوروڅخه دهغه مطالبه ختميږي مګرثواب صرف كونكې ته وركول كيږي لكه درمضان په اخري عشره كې په مسجدكې اعتكاف كول.

**نمبر ۴- حرام**: دکوم شی حرمت که له قطعي دليل (يعنی آيات يااحاديث صحيحه متواتره )څخه ثابت وونو هغه ته حرام ويل کيږي لکه لمونځونه له خپل وخت څخه مؤخرکول ،درواغ ويل ،دچاپه حق ورکولو کې بانې مانې کول ،دچامال غصب کول ،په خلکو ظلم کول ،غلاکول ،شراب څښل ،سود خوړل، لمونځ پريښودل وغيره وغيره ټول حرام دي .

**دحرامو حکم**: دحرام کارکونکی دسخت عذاب مستحق دی اونه کونکی يې دثواب مستحق دی.

**مکروه**: مکروه احکام پردوه قسمه دي ،مکروه تحريمي ،مکروه تنزيهي

**مکروه تحريمي**: مکروه تحريمي هغه دی چې له هغه څخه شريعت منع کړي وي ليکن دليل يې ظني وي خبرواحدوي لکه دمازديگرلمونځ ځنډول دلمرتزړيدلوپوري يالکه تقاضاحاجت سره لمونځ کول ياله يوچاڅخه په غصب شوي ځمکه لمونځ کول ياپه غصب شويوجامو کې لمونځ کول يادکوچني اختريالوی اخترپه ورځ روژه نيول يادسپينويا سروزرو دلوښو استعمالول داټول مکروه تحريمي دي.

**مکروه تنزيهي**: له کوم کارڅخه چې شريعت نفرت ورکړی وي مگر دکونکې لپاره يې دڅه سزاذکرنه وي کړی نودداسي کارکونکی گواکې حراموته په نسبت حلالوته ډيرنژدي وي مثلاً په اوداسه کې داوبوپه استعمال کې اسراف کول ، دجمعي دورځي غسل نه کول ،په اوداسه کې مسواک نه وهل ، اويابسم الله نه ويل .

**دمکروه تنزيهي حکم**: دمکروه تنزيهي حکم دادی چې نه کونکی يې دثواب مستحق دی اوکونکی يې دعذاب مستحق نه دی .

**نمبر ۵- مباح** : مباح هغه عمل دی دکوم چې شريعت نه دکولو حکم کړی وي اونه يې دنه کولو حکم کړی وي لکه خوړل، څښل ، ولاړيدل کښينستل اخيستل خرڅول وغيره وغيره .

**دمباح حکم** : دمباح حکم دادی چې نه په ده کې ثواب شته اونه عذاب اوانسان ته پکې اختيار دی که يې خوښه وه ودي کړي اوکه يې خوښه وه نه دي کوي البته داسي کارکه په ښه نيت سره وکړل شي نوکونکی داجرمستحق گرځي په دي صورت کې دامباح کاردمستحب درجې ته پورته کيږي لکه دميلمه دعزت دپاره خوراک له ده سره يوځای خوړل ياپه ورځ کې په دي نيت ويده کيدل چې دشپې عبادت وکړای شي يابنې جامې په دي نيت واغوستل شي چې دالله تعالی ﷻ دنعمتونو اثرښکاره شي.(مقدمه المعتصر الضروری)

## فوائدمتفرقه

**فائده**:داحنافوپه کتابونوکې چې په کوم ځای کې حسن ذکرشوي وي نوله هغه څخه دامام ابوحنيفه شاگردامام حسن بن زياد رحمه الله مرادوي اودتفسيرپه کتابونوکې مطلق ذکرشوي وونوله هغه څخه حسن بصری رحمه الله مرادوي .

**فائده** : الامام ياالامام الاعظم که داحنافوپه کتابونوکې ذکرشوي وونوله هغه څخه امام ابوحنيفه رحمه الله مرادوي اوله صاحب المذهب څخه هم امام ابوحنيفه رحمه الله مرادوي .

**فائده**: له صاحبينو څخه مراد امام ابو يوسف رحمه الله او مام محمد رحمه الله وي او له شيخينو څخه امام ابو حنيفه او امام ابو يوسف او له طرفينو څخه امام ابو حنيفه او امام محمد مراد وي او له الامام الثاني څخه امام ابو يوسف رحمه الله او له الامام الرباني څخه امام محمد رحمه الله مراد وي.

**فائده**: له عند ائمتنا الثلاثة څخه مراد امام ابو حنيفه، امام ابو يوسف او امام محمد وي او له الائمة الاربعة څخه مراد امام ابو حنيفه، امام مالک، امام شافعي او امام احمد بن حنبل وي.

**فائده**: د فقهاؤ په قول هذا الحکم عنده يا هذا مذهبه کې که د ها، ضمير مرجع مخکې نه وه ذکر شوي نو له دې څخه به مراد امام ابو حنيفه وي ځکه چې هغه حکماً مذکور دی او هم دا شان د عندهما د ضمير مرجع که مخکې نه وه ذکر شوې نو له دې څخه به صاحبين مراد وي او کله له دې څخه امام ابو حنيفه او امام ابو يوسف يا امام ابو حنيفه او امام محمد وي مگر په دې شرط چې په ائمه ثلاثه کې د دريم ذکر وړاندې د دې حکم په خلاف کې شوی وي مثلاً دا شان عبارت وي قالوا عند محمد کذا و عندهما کذا نو په دې وخت کې له هما ضمير څخه امام ابو حنيفه امام ابو يوسف مراد وي.

**فائده**: کله د فقهاؤ په عبارت کې د عنده يا عنه لفظ ذکر شوی وي مثلاً وايي هذا عند ابي حنيفه وعنه کذا نو د اول مطلب دا دی چې دا د امام ابو حنيفه رحمه الله مذهب دی او د دوهم مطلب دا دی چې دا له امام ابو حنيفه رحمه الله څخه يو روايت دی.

**فائده**: د مکروه يا يکره لفظ که د فقهاؤ په عبارت کې مطلق ذکر شوې وو له دې څخه مراد کراهت تحريمي وي الا په هغه صورت کې د چې د مکروه تنزيهي تصريح وشي او يا د کراهت تنزيهي په مراد والی باندې کوم دليل موجود وې.

**فائده**: کله د سنت لفظ ذکر کيږي او له هغه څخه مراد استحباب وي او کله د دې برعکس مستحب ذکر کيږي او مراد ور څخه سنت وي کوم چې له حالي يا مقالي قرائنو څخه معلوميږي او کله واجب ذکروي مگر له هغه عامه معنی مراد وي کومه چې فرضو او واجبو دواړو ته شامله ده. (مقدمه شرح الوقايه)

**فائده**: کله د يجوز لفظ استعماليږي مگر مراد تري هغه شی وي کوم چې شرعاً ممنوع نه وي لهذا دا واجب، مندوب، مباح او مکروه ټولو ته شامل وي او هم دا وجه ده چې په مکروه طريقه لمونځ اداء کولو ته ځيني وختونو د جاز لفظ استعماليږي نو له دې څخه مراد نفس صحت وي بغير له دې چې د کراهت لحاظ وکول شي.

**فائده**: د ينبغي لفظ متاخرينو په عرف کې ډير په مندوباتو کې استعماليږي مگر د متقدمينو په عرف د عامه معنی لپاره استعماليږي کومه چې واجبو ته هم ور شامله ده.

د شرعي اوزانو تفصيل

**يو مليون** لس لکه

**زر مليونه** يو بليون

**لس لکه مليونه يا زر مليونه** يو ترائلين

**رتی** داتودانووريجوپه اندازه وزن
**ماشه** اته رتی
**توله** دولس ماشې
**طسوج** تقريباپاوکم يوه رتی ، په اصل کې طسوج دوه اوريشې دي اويوه رتی له دريواوريشوڅخه لږکمه ده .
**قيراط** تقريباپاوکم دوه رتی . دفقهاؤ دتصريح مطابق يوقيراط پنځه اوريشې او څوارلس قيراطه يودرهم دی درهم پنځه ويشت رتی دی .
**دانق يادانګ** تقريبا اوه رتی ، اصل دادی چې دانق څلورقيراطه دی اويوقيراط پاوکم دوه رتی ده نو څلورقيراطه اوه رتی شوو .
**درهم** دري ماشې يوه رتی اودرتی پنځمه حصه وي دفقهاؤدوينامطابق ددرهم وزن اويااوريشې دی په ماشه چې وزن شي نوهمداوزن جوړيږي
**مثقال** څلورماشې اوڅلوررتی وي دمثقال وزن دفقهاؤ دتصريح مطابق سل اوريشې دی زموږپه اوزانوهم دغه وزن جوړيږي
**رطل** څلورديرش تولې يونيمه توله دشامي وغيره دتصريح مطابق درطل وزن يوسل اوديرش درهمه دی چې دتولې په حساب يې هم همداوزن راوځي .
**مد** اته شپيته تولې دري ماشې دشامي دقول مطابق دمد وزن دوسوه درهمه دي چې دتولې په حساب يې هم همداوزن راوځي .
**من** اته شپيته تولې دري ماشي دشامي دقول مطابق دمدوزن دوسوه درهمه دي چې دتولې په حساب يې هم همداوزن راوځي .
**استار** ددرهم په حساب يوه توله اته ماشې دوه تقسيم په دريورتيو يواستارشپږدرهمه ده اوهمداوزن يې راوځي .
**اوقيه** لس نيمې تولې ددرهم په اعتبارداوقيې وزن حسب تصريح فقهاء څلويښت درهمه دی دکومې چې هندی وزن هم همدادی .
**صاع** ددرهم په حساب ۲۷۰ تولې اودمثقال په حساب ۲۷۳ تولې
**نصف صاع** ددرهم په حساب ۱۳۵ تولې اودمثقال په حساب ۱۳۶ تولې او۶ ماشې
**وسق** ددرهم په حساب پنځه منه دوه نيم سيره په ۸۰ توله سيرباندې اودمثقال په حساب پنځه منه پاوکم پنځه سيره .
**مساحات شرعيه وهنديه**
**نوانح** يوه لويشت
**دوه لويشتې يااتلس انچه** يولاس يايوشرعی ګز

**مثقال** څلورماشي اوڅلوررتي،وي دمثقال وزن دفقهاؤ دتصريح مطابق سل اوربشي دي زموږپه اوزانو هم دغه وزن جوړيږي

**رطل** څلورديرش تولي يونيمه توله دشامي وغيره دتصريح مطابق درطل وزن يوسل اوديرش درهمه دي چې دتولي په حساب يې هم همدا وزن راوځي .

**مد** اته شپيته تولي دري ماشي دشامي دقول مطابق دمد وزن دوسوه درهمه دي چې دتولي په حساب يې هم همدا وزن راوځي .

**من** اته شپيته تولي دري ماشي دشامي دقول مطابق دمد وزن دوسوه درهمه دي چې دتولي په حساب يې هم همدا وزن راوځي .

**استار** ددرهم په حساب يوه توله اته ماشي دوه تقسيم په دريورتيو يواستارشپږدرهمه ده اوهمدا وزن يې راوځي .

**اوقيه** لس نيمي تولي ددرهم په اعتبارداوقيي وزن حسب تصريح فقهاء څلويشت درهمه دی دکومې چې هندی وزن هم همدا دی .

**صاع** ددرهم په حساب ۲۷۰ تولي اودمثقال په حساب ۲۷۳ تولي

**نصف صاع** ددرهم په حساب ۱۳۵ تولي اودمثقال په حساب ۱۳۶ تولي او ۶ ماشي

**وسق** ددرهم په حساب پنځه منه دوه نيم سيره په ۸۰ توله سيرباندي اودمثقال په حساب پنځه منه پاوكم پنځه سيره .

**مساحات شرعيه وهنديه**

**نوانځ** يوه لويشت

**دوه لويشتي ياأتلس انچه** يولاس يايوشرعی گز

**دوه لاسه** يوانګريزي ګز

**يوانګريزي ګز** دري پوټه ياشپږديرش انچه

**يوفټ** دولس انچه

**ذراع مساحت** (دځمكې اوغيره دناپول شرعی ګز) يوانګريزی ګز اوشپږانچه يادري نيم فوټه يادوڅلويشت انچه

**ذراع كرباس** (دجامودناپولو شرعی ګز)نيم انګريزي ګز يايونيم فوټ يااتلس انچه

**شرعی ميل** څلورزره شرعی ګزه يادوزره انګريزي ګزه

**انګريزي ميل** اته فرلانګه اوهرفرلانګ دوه سوه شل انګريزي ګزه نوانګريزي ميل اولس سوه شپيته انګريزي ګزه شو اودااهم معلومه شوه چې شرعی ميل له انګريزي ميل څخه دوسوه څلويشت انګريزي ګزه لوی دی .

**فرسخ** دري ميله مسافي ته فرسخ ويل كيږي

**برید** څلور فرسخه یادولس میله مسافه
**میټریو** گزاو پاو بالادري انچه پیمانې ته میټرویل کیږي (مأخوذ ازجواهرالفقه بتغییر)

## دکنزدالدقائق دمصنف پیژندنه

**نوم ،نسب اوسکونت** : دکنزالدقائق دمصنف نوم عبدالله اوکنیت یې ابوالبرکات اودپلارنوم یې احمد اودنیکه نوم یې محمود دی دنسف (بفتحتین)اوسیدونکی وو کوم چې په ماوراء النهرکې دجیحون اؤسمرقند په منځ دیوه لوی ښارنوم دی په کوم کې چې دهرفن ډیرماهرین پیداشوي دي دهمدې نسبت له امله دکنزالدقائق مصنف ته نسفی ویل کیږي دی ډیرعابد ،متقی ،امام کامل ،په خپله زمانه کې عدیم النظیر،فقه ،اصول فقه اوحدیثوکې یگانه روزگار اودمشهورمتن لیکونکو مصنفینوپه قطارکې راځي.

**دینې زده کړې** :امام نسفی رحمه الله له ډیروجلیل القدراولوړمرتبولرونکومحدثینواوفقهاء شمس الائمه محمدبن عبدالستار کردری،حمیدالدي ضریر ،اوبدرالدین خواهرزاده وغیره څخه دینې علم حاصل کړی دی اوله ده څخه علامه سغناقی وغیره سماع کړې ده .

**دجواهردمصنف غلطي**: دجوهرمضیه مصنف دعین ترحرف لاندې دامام نسفی یادونه کړې ده اوویلي دي چې امام موصوف علم فقه له علامه کردری څخه زده کړي ده اوله احمدبن محمد العتابی څخه یې زیادات روایت کړی دی ملاعلی قاري رحمه الله هم دهغه پر پله تللی دی علامه کفوی فرمایي چې دجواهر مضیه مصنف تصریح کړې ده چې علامه عتابی په کال ۵۸۶ هج کې وفات شوی دی اوامام نسفی په کال ۷۱۰ یا ۷۱۱ هج کې وفات شوی دی نودامام نسفی متوفی کال ۷۱۰ هج روایت اوسماع به له علامه عتابی متوفی کال ۵۸۶ هج څخه څرنگه صحیح شي ؟(معدن والفوائد البهیه:ص۱۰۲)

**دصاحب کنزفقهي مقام** :ابن کمال پاشادی په شپږمه طبقه کې شمارکړی دی کوم چې ضعیف روایتونه له قوی راوایاتو څخه جلاکولی شي ددي حضراتومرتبه له مجتهدینو ،مخرجینو اومرجحینو څخه کښته ده داحضرات په خپلوکتابونوکې د ضعیفواو مردودوروایاتوله نقل څخه ځان ژغوري .ځینو حضراتودی له مجتهدین فی المذهب څخه گڼلی دی اوویلي دي لکه څرنگه چې داجتهادمطلق درجه په ائمه اربعه ختمه شوه همداشان اجتهادفی المذهب پرده ختم شوقائل مذکورپه دي خبره په تفریع کولوسره داهم وایي چې په امت باندې په دوئ کې دیوه تقلیدواجب دی علامه بحرالعلوم دتحریر الاصول اومسلم الثبوت په شرحوکې داقول ردکړی دی اوویلي دي داهیڅ کله دمنلوړنه دی بلکه داقول بې له شک اوشبه رجماً بالغیب دی .(معدن وطرب الاماثل:ص۱۰۱)

**دامام نسفی علمي کارنامې**:امام نسفی له لویودرجه لرونکومصنفینو څخه دی په ځانگړې ډول متن لیکل خورده دافتخاردخولی لپاره دامتیازتغمه ده په فروعوکې متن وافی اودهغه شرح کافی اوپه فقه کې مشهورمتن کنزالدقائق اوپه اصولوکې متداول اومقبول متن المناراودهغه شرح کشف الاستار.

المستصفى شرح النافع ،المصفى فى مختصر المستصفى ،اعتمادشرح الاعتقاد اومدارک التنزيل وحقائق التاويل وغيره دده علمي يادګارونه دي.

ملاكاتب چلپي په كشف الظنون ۵/۳۷۹ كې دهدايه دشروحوپه نوم لړكې دامام نسفى دشرح هدايه يادونه هم كړي ده مګردتقي الدين په طبقاتوكې دابن شحنه په خط ليكل شوي دي چې دده دهدايه كومه شرحه معروفه نه ده علامه اتقاني په غاية البيان كې ويلي دي چې امام نسفى غوښتل چې دهدايه شرح وليكي ليكن كله چې دده همعصرعالم تاج الشريعة داواوريدل اوويې فرمايل چې دده لپاره داكاربنه نه ده نوامام نسفى خپله داارادہ ختمه كړه اودهدايه په مثل يې يوكتاب دوافى په نوم تصنيف كړاوبيايې دكافى په نوم دهغه شرح وكړه فكانه شرح هدايه.

**دكنزالدقائق جامعيت**:په ظاهره كې كنزاوغيره دمتونوكتابونه چې نن صباپه لويولويوحروفواوله اوږدلمنوحاشيوسره چاپ شوي دي ليدونكوته دابنكاريږي چې شايددابه ډيرلوی كتاب وي مګرپه كوموحروفوچې نن صبااخبارونو اوورځپاڼي خپريږي كه په هغوحرفوكنزوليكل شي نوبلامبالغه په يوه معمولي كتابچه كې ټول كتاب ځايدلی شي ددي متونونوعيت زماپه خيال دهغو يادداشتونوپه شيردی چې ديوتقريردكولوياغيره لپاره نوټ شوي وي اسلافوددي عجيبه مشق ترموږرارسولی دی دكومو شيانوتفصيل چې په لسولسومخونوكې راتلوهغه ټول مضمون به دوئ په يوه يادوكرشوكې په داسې دول بندكړچې په هغه ټول مفصل مضمون به هغه عبارت حاوی ووداېوكمال ووكوم چې اوس نقص اوبې كمالي ګڼل كيږي دقضاوافتاء كاركونكوبه دغه يادداشتونه په يادوزده كړي وو نتيجه داوه چې ټول بابونه اودمضمون عنوانوبه دهغوئ سره محفوظ وو.

**كنزاودهغه شروحات**:هسې خومتن مذكوردخپل جامعيت اوترتيب وتهذيب سره سره دحسن اختصارله امله دتصنيف له ورځې بياتراوسه پوري دقلم دښتانومنظورنظرپاته شوی دی او مختلفو اهل علم حضراتو زيلعى،عينى،حلبى، مقدسى،كرمانى وغيره پرده قلم رااخيستی اوپه زيات شميركې شرحې يې دنياته وړاندې شوي دي دكوموچې فهرست په اخير كې درج دی ليكن دعلامه ابن نجيم مصرى شرح البحرالرائق په كشف مغلقات توضيح معضلات تشريحات اوتفريعاتو كې مثل نه لري ولنعم ماقال المنصورالابلسی علی الكنزفی الفقه الشروح كثيرة:بحارلفيدلطالبين لآلها:ولكن هذاالبحرصارت سوالها:ومن وردالبحراستقل السوالها.(معدن بنفير)

**خطبه كتاب**

بسم الله الرحمن الرحيم

**ترجمه**:.شروع كوم دالله په نامه چې زيات ښنونكى اوډيرمهربان دى.

الحمدلله اعز العلم في الاعصار واعلى حزبه في الانصار

**ترجمه**: ټول صفتونه هغه الله تعالی لره دي چا چې په هره زمانه کې علم دين ته عزت ورکړی دی او لوړ کړي يې دي څښتنان د علم او د هغوئ مرسته کونکي.

**تشريح**: مصنف صاحب د قرآن كريم په اقتداء كولو سره د خپل تصنيف شروع په الحمدلله او بسم الله سره وكړه ځكه چې د قرآن كريم په ابتداء كې هم بسم الله او الحمدلله ده او همدا شان په حديث شريف ﴿كل امر ذی بال لم يبدأ فيه بسم الله فهو اقطع او كل امر ذی بال لم يبدأ فيه بحمدالله فهو اقطع﴾ په عمل كولو سره يې د خپل تصنيف پيل په بسم الله او الحمدلله سره وكړ او همدارنګه مصنف صاحب د اسلافو د اتباع له امله دا كار وكړ ځكه چې د اسلافو دا عادت وو چې هغوئ به د خپلو كتابونو پيل په بسم الله او الحمدلله سره كاوو.

**ف**: په بسم الله كې باء جاره ده او اسم يې مجرور دی او د جار او مجرور لپاره متعلق ضروري دی د كوفيينو او بصريينو په دې كې اختلاف دی چې آيا د بسم الله متعلق فعل دی او كه اسم. اهل بصره وايي فعل مقدر دی ځكه چې د امقدر عامل دی او فعل په عمل كې اصل دی ځكه چې فعل د عمل لپاره وضع شوی دی په خلاف د اسم ځكه چې هغه د فعل د مشابهت له كبله عمل كوي او اهل كوفه وايي چې اسم مقدر دی ځكه چې په تقدير كې اصل افراد دی او اسم مفرد دی نه فعل، بيا د بصريينو په رأيه فعل عام مقدر دی البته كه په كوم ځای كې د خاص فعل په تقدير قرينه وه نو په هغه ځای كې به فعل خاص مقدروي په بسم الله كې څرنګه چې شروع فی الكتاب د فعل خاص په تقدير قرينه ده نو لهذا د لته به فعل خاص مقدروي چې اشرع دی.

او د اشرع مخته د مقدر ګڼلو په نسبت وروسته مقدر ګڼل افضل دی ځكه چې د مصنف رحمه الله مقصود دا دی چې د الله په نامه شروع وشي او د اشرع مخته د مقدر ګڼلو په صورت كې شروع د الله جل جلاله په نامه نه بلكه په اشرع وشوه.

**سوال**: د اشرع وروسته مقدر ګڼلو په صورت كې هم شروع د الله جل جلاله په نامه ونه شوه ځكه چې اوس هم په پيل كې د اسم لفظ دی او اسم د الله جل جلاله نوم نه دی؟

**ځواب**: د اسم په لفظ سره پيل كول د مجبوري له كبله دي ځكه چې كه د بسم الله پر ځای بالله وويل شي نو د قسم سره به التباس راشي ځكه بسم الله وويل شوه.

**ف**: د الله لفظ د ذات واجب الوجود المستجمع لجميع صفات الكماليه نوم دی او د الرحمن او الرحيم لغوي معنی د زړه نرم والی دی د لته ورڅخه مراد احسان او انعام دی ځكه چې د الله جل جلاله لپاره زړه (كوم چې له جسميت سره لازم دی) نشته لهذا د زړه د نرم والی غايه به مراد وي چې احسان دی په همدې شان هر صفت چې الله جل جلاله ته ثابت وي له هغه څخه به د صفت غايه مراد وي.

**ف**: د حمد لغوي معنی صفت كول دي او په اصطلاح كې هو الثناء على الجميل الاختياری نعمة كانت او غيرها باللسان وحده ته ويل كيږي او شكر الثناء على النعمة وحدها باللسان وغيره من الجوارح ته ويل كيږي او مدح الثناء على الجميل اختيارياً او لا باللسان وحده ته ويل كيږي نو د حمد مورد صرف ژبه ده متعلق كه يې نعمت وي او كه غير نعمة او د شكر متعلق نعمة دی او موردې ژبه هم كيدای شي او غير له ژبې هم، نو لهذا احمد د متعلق په اعتبار سره له شكر څخه عام دی

اودموردپه اعتبارسره خاص دی اوشکردموردپه اعتبارسره عام دی اودمتعلق په اعتبارخاص دی دحمدنقیض ذم دی اودشکرنقیض کفران دی.

**په حمداومدح کښې فرق:** مدح دروح لرونکي اوروح نه لرونکي دواړه کیدای شي اوحمدصرف دروح لرونکي کیدای شي لهذا مدحت اللؤلؤ ویل صحیح دي مګر حمدت اللؤلؤ ویل صحیح نه دي.

په لله کښې لام یا داختصاص لپاره دی یا دملک لپاره په اول تقدیردحمدمعنی داده جنس الحمد مختص بالله المستجمع لجمیع الصفات المستحق لجمیع المحامد اوپه دوهم تقدیرېي معنی داده جنس الحمدملک لله تعالی،ځکه چې حمددبندګانوله افعالو څخه دی اوخپله بندګان دمکاتبینوپه مثل دي چې په ظاهره خوددوې کتې ددوې مملوکې دي مګرپه حقیقت کښې دالله تعالی لپاره دي .له العلم څخه علم فقه مراددہ ځکه چې په دې ځای کښې دغه علم مرادول مناسب دي اودفقه عزت دادی چې دهرعامل په نفس کښې ددې تعظیم دی دفقه په شرافت باندې په هره زمانه کښې دټولو اتفاق راغلی دی.

اعصاردعصرجمع ده مګرپه دې دا **سوال** شوی دی چې دفَعْل (بفتح الفاء وسکون العین)جمع دافعال په وزن راتلل شاذدي باید دافعل په وزن راشي؟ **ځواب:** دراتلونکې لفظ یعنی الانصاردمناسبت په وجه سره مصنف ﷫ دفعل جمع دافعال په وزن ذکرکړې ده همداشان عصردعصر،عصوراوعصرپه وزن هم جمع کیدای شي.اعلی دافعال له باب څخه دماضی صیغه ده دلوړېي کړوپه معنی .له اعلی حزبه څخه مراد ددرجاتولوړوالی دی لماقال الله تعالی ﴿ یرفع الله الذین امنو منکم والذین اوتو العلم درجات ﴾ وقال الله تعالی ﴿هل یستوی الذین یعلمون والذین لایعلمون﴾ .حزب په معنی دټولی،دخلګو جماعت، الانصار دناصرجمع ده لکه څرنګه چې اصحاب دصاحب جمع ده په معنی دمرسته کونکې انصارپه خلاف القیاس دناصرجمع ده دقیاس تقاضاداده چې دناصرجمع باید نواصر راشي لکه دباطن جمع چې بواطن ده له انصاروڅخه مرادتقوی لرونکې امیران اوبادشاهان دي الف لام عهدی دی ای انصار العلم.

| والصلوٰة والسلام علی رسوله المختص بهذا الفضل العظیم وعلی آله الذین فازوا منه بحظ جسیم |
|---|

**ترجمه:** اونزول درحمت دې وي دالله تعالی پررسول ﷺ باندې کوم چې مختص دی په دې عظیم فضل سره اودهغه ﷺ پر ال باندې کوم چې کامیابه شوې دي ددې علم په لویه حصه سره.

**تشریح:** دالله تعالی له لورې دې په حضرت محمد ﷺ باندې صلوة وسلام وي صلوة من الله په معنی درحمت دی او صلوة من الملائکه په معنی داستغفاردی او صلوة من المؤمنین په معنی ددعاء دی صلوة دمشترک فیه معنی لپاره وضع شوی دی نه داچې خپله دصلوة لفظ مشترک دی یعنی صلوة په معنی دتعظیم دی بیارحمت، استغفاراودعاء دده افراددي داسې چې دصلوة لفظ دعین دلفظ په شان دمتعدد ومعنی ګانو لپاره وضع ده خلاصه داچې دصلوة لفظ دحیوان دلفظ په څیرمشترک معنوی دی دعین دلفظ په څیرمشترک لفظی نه دی اوس داسوال پاتې نه شوچې دالله تعالی په ارشاد ﴿ ان الله وملائکته یصلون علی النبی (الآیة) ﴾ کښې مشترک لفظ په یووخت کښې په دومعنی ګانوکښې استعمال شوی دی دالصلوة الف لام عهدی دی ای الصلوة التی امرنا الله بها بقوله یاایها الذین آمنو صلوا علیه (الآیة).

**د رسول لغوي او اصطلاحي معنی**: رسول د فعول پر وزن دی لکه څرنګه چې فعیل د فاعل په معنی هم راځي او د مفعول په معنی هم راځي فعول هم همداسې دی لکه غفور په معنی د غافر او حلوبة په معنی د محلوبة چې د حلوب مؤنث دی دلته رسول د مرسل په معنی سره دی یعنی پرستاده شده (لیږل شوی) او د رسول اصطلاحي معنی انسان بعثه الله الی الخلق لتبلیغ الاحکام (هغه انسان چې الله تعالی مخلوق ته د احکامو د تبلیغ لپاره لیږلی وي) ده.

**د رسول او نبي ترمنځ فرق**: د رسول او نبي ترمنځ کوم نسبت دی په دې کې درې قوله دي **نمبر ۱**- د تساوي نسبت دی یعنی څوک چې رسول دی هغه نبي هم دی او څوک چې نبي دی هغه رسول هم دی مګر دا صحیح نه دی ځکه چې الله تعالی فرمایي ﴿ما ارسلنا من قبلک من رسول ولا نبي﴾ دلته نبي پر رسول عطف شوی دی او عطف د مغائرت تقاضا کوي یعنی معطوف به له معطوف علیه څخه مغائر وي نو بیا به د رسول او نبي په منځ کې د تساوي نسبت څنګه وي؟

**نمبر ۲**- د تباین نسبت دی مګر دا قول هم صحیح نه دی ځکه چې الله تعالی د حضرت اسماعیل علیه السلام په باره کې فرمایي ﴿وکان رسولا نبیا﴾ دلته د رسول او نبي دواړو اطلاق په یوه ذات شوی دی نو د دوئ په منځ کې به نسبت تباین څنګه صحیح شي.

**نمبر ۳**- د عموم خصوص مطلق نسبت دی داسې چې نبي اعم مطلق دی او رسول اخص مطلق دی په دې دول چې رسول هغه دی چې هغه ته فرښتې وحی راوړي وي او نبي عام ده خواکه ده ته فرښتې وحی راوړي وي او که د الهام یا خوب په طریقه احکام ورکړل شوي و.

**د لفظ آل اصل**: د آل د لفظ په اصل کې اختلاف دی یو قول دا دی چې د آل اصل اهل دی هاء په همزه بدله شوه او بیا د آمن د قانون په اساس همزه په الف بدله شوه نو آل جوړ شو د دې قول دلیل دا دی چې د آل تصغیر اهیل راځي او تصغیر شی خپل اصل ته ګرځوي نو چې په تصغیر کې هاء ده نو د آل په اصل کې به هم وي.

دوهم قول دا دی چې د آل اصل اول دی واؤ په الف بدل شو آل جوړ شو د دې دلیل دا دی چې د آل تصغیر اویل دی نو چې په تصغیر کې واؤ شته په اصل کې به هم وي د دوهم قول والا وایي چې آل جلالفظ دی چې تصغیر یې اویل دی او اهل جلالفظ دی چې تصغیر یې اهیل دی.

**ف**: له آل محمد ﷺ څخه څوک مراد دي په دې باره کې د علماء مختلف اقوال دي (۱) له آل محمد ﷺ څخه امهات المؤمنین مراد دي لقوله تعالی ﴿انما یرید الله لیذهب عنکم الرجس اهل البیت ویطهرکم تطهیرا﴾ د دې آیت له سیاق او سباق څخه همدا معلومیږي چې له اهل بیت څخه امهات المؤمنین مراد دي. (۲) له آل محمد ﷺ څخه حضرت علي رضی الله عنه، حضرت فاطمه رضی الله عنها او حضرات حسنین رضی الله عنهما مراد دي ځکه چې منقول دي چې کله د پورتنی آیت نازل شو نو نبي کریم ﷺ یو څادر راپورته کړ او د دې څلور حضراتو پر سر یې واچاوه او ویې فرمایل ای الله ﷻ دا زما اهل بیت دي ته له دوئ څخه ګناهونه لرې کړي او دوئ پاک کړي. (۳) بنو هاشم او بنو عبد المطلب مراد دي یعنی هغه کسان کوم ته چې زکوة اخیستل حرام دي دا د امام شافعي رحمه الله رأیه ده. (۴) د ځینو محققینو رأیه دا ده چې د الفظ په مختلفو ځایونو کې د پورته ذکر شویو دریو سره معنی

گانولپاره استعمال شوى دى اومجازادنوروصالحينواواهل تقوى لپاره هم استعماليږي لماقال ﷺ سلمان منامن اهل البيت ولي حديث ضعيف كل تقي آلي دلته داخرنۍ معنى مناسبه ده ځكه چې دادنبى كريم ﷺ اولاد،فقهاء اوصحابه كرام ﷺ ټولوته شامله ده لهذاتعميم مناسب دى.

فازيفوزفوزادنجاة اوظفربالخيرپه معنى دى اومنه جارسره له مجروره ترکائنامتعلق له بحظ څخه حال دى اوحظ دنصيب اوحصې په معنى دى جسيم په معنى دعظيم دمنه ضميرعلم ته راجع دى اى فازوامن العلم بحظ جسيم اوداحتمال هم شته چې نبى كريم ﷺ ته راجع شي اى فازوامن النبى ﷺ بحظ جسيم.

قال مولنا الحبر النحرير محرز قصبات السبق فى التقرير و التحرير علم الهدى علامة الورى مالک ازمة الفتيا مظهر كلمات الله العليا كشاف حقائق مبين الدقائق

**ترجمه**:ويلي دي مولاناچې نيک عالم ماهراوجمع كونكې ديى دوړاندي والى دبانسوپه تقريراوتحرير كې دهدايت علم بردار،په مخلوق كې لوى عالم،دفتوادملونومالک،دالله تعالى دعالى كلماتوظاهره كونكي،دحقائقوښه لوڅونكې اودباريكيوښه ظاهره كونكې.

**تشريح**:داعبارت دمصنف رحمه الله شاګردانوزيات كړى دى په اصل مسوده كې داعبارت نشته شاګردانوخپل استادپه څينومادحه صفاتومتصف كړى دى،الحبر نيک عالم اود،العالم اللذى يزين الكلام بتقريره وتحريره، په معنى دى اوجمع يې احباراوحبورده ، النحرير(بكسرالنون)په معنى دحازق،ماهر، عاقل،مجرب اوفطن دى دنحريرجمع نحاريرده محرز داحرز يحرزاحرازاڅخه اسم فاعل دى دجمع كولو،ساتلو، او ذخيره كولوپه معنى دى،قصبات دقصبة جمع ده قصب هرهغه شى ته ويل كيږي چې په هغه كې بندونه اوغوټې وي لكه بانس،نركل وغيره،احرز قصب السبق په معنى دغالب شودى اوددي اصل دادى چې په منډوكې دمقابلې په وخت به دمنډوپه ميدان يوبانس ودراوه نوكوم كس چې ترټولو وړاندي هغه ته وررسيدوهغه به يې راكښى اوپورته كاوه به يې ترڅودده په ګټولواوغلبې باندي نښانه وي.

علم،دجامې دنقش،بيرغ،اودقوم دمشرپه معنى دى جمع يې اعلام ده الهدى درهنمائي،بيان،اودلالت په معنى ده ويل كيږي هوعلى الهدى هغه پرهدايت دى العلامة دمبالغې صيغه ده په معنى دډيرپوه،الورى دورى اسم ده دمخلوق په معنى،ازمة دزمام جمع ده په معنى دمهار،باګ،لګام چې په هغه يوشى وتړل شي،الفتيا(بضم الفاء)په شرعى مسائلوكې په شريعت دپوه كس فيصله،جمع يې فتاوى ده المظهرله اظهريظهراظهاراڅخه په معنى دښكاره كونكې،كلمات دكلمة جمع ده په معنى دلفظ كه مفردوي كه مركب چې انسان يې وايې،العليادلوړځاى په معنى ده، كشاف صيغه دمبالغې ده ويل كيږي هوكشاف الغمم هغه دغمونولرې كونكې دى،الحقائق دحقيقة جمع ده په معنى داصل اوماهيت شى،مبين يبين تبيانا څخه مشتق ده په معنى دواضح كولوسره، الدقائق په معنى دباريكې اومشكلې معاملې.

سلطان علماء الشرق والصين حافظ الحق والملة والدين وارث الانبياء والمرسلين ابو البركات عبدالله ابن احمد بن محمود النسفي متع الله المسلمين بدوام بقائه

**ترجمه**: دشرق او دغرب دعلماو بادشاه دی ساتونکي دی دحق، ملت او دین، وارث دی دانبیاو اورسولانو دچاچي کنیت ابو البرکات او نوم عبدالله او دا احمدزوی هغه د محمود زوی او دنسف اوسیدونکی دی گته دي ورسوي الله تعالی استفاده کونکوته دده دعمرپه درازوالي سره.

**تشریح**: له علماء شرق څخه عجم مراددی او صین معرب دی دچین مراد مغرب دی په حافظ الحق الخ سره یې دمصنف صاحب لقب ته اشاره وکړه ځکه چې دمصنف صاحب لقب حافظ الدین دی حافظ دمحدثینو په اصطلاح کې هغه شخص ته ویل کیږي دچاچې یولک حدیثونه په یادوي، ملت اودین ذاتامتحددي او اعتبارامختلف دي شریعت په دي حیثیت چې اطاعت یې کیږي دین دی او په دي حیثیت چې لیکل کیږي ملت دی، وارث الانبیاء دنبی کریم ﷺ له دي قول څخه اخیستل شوی دی العلماء ورثة الانبیاء والمرسلین فان الانبیاء لم یورثوا درهما ولادینارا وانما ورثوا العلم فمن اخذها اخذبحظ وافر، دمصنف کنیت ابو البرکات او نوم یې عبدالله ده دپلارنوم یې محمداو دنیکه نوم یې محمود دی النسفي دنسف ښارته منسوب دی نسف دجیحون اوسمرقند په منځ کې دیوښارنوم دی، متع الله المقتبسین بدوام بقائه، دا شاگرد دخپل عبارت په پای کې خپل استادته دعاء کړي ده مقتبسین داقتباس اسم فاعل دی لغوی معنی یې له اورڅخه سپرغۍ اخیستل اوس استعارة په طلب علم او هدایت کې استعمالیږي دلته یې دغه معنی مراده ده.

لما رأیت الهمم مائلة الی المختصرات والطباع راغبة عن المطولات اردت ان الخص الوافی بذکر ماعم وقوعه وکثر وجوده لتکثر فائدته وتتوفر عائدته فشرعت فیه بعد التماس طائفة من اعیان الافاضل والافاضل الاعیان الذین هم بمنزلة الانسان للعین والعین للانسان مع مابی من العوائق

**ترجمه**: کله چې ماولیدل چې همتونه مائل وو دمختصرو کتابونولورته او طبیعتونو سرغړاوه له اوږدو کتابونو څخه نو ما اراده وکړه چې مختصر کړم وافی دهغو مسائلو په ذکر کولو سره چې عامي دي او ډیري پیښیږي ترڅو ډیروي ددي فائده بزیات وي بنه والی او منفعت نوما شرع وکړه په دي کار کې وروسته له غوښتنو دلوړو درجو خاوندانو اصحاب فضل وکمال علماو، هغه علماء کرام چې هغوئ په منزله دکسې دي سترگو لره او په منزله دسترگو دي انسان لره سره له دي چې ماته موانع هم موجود وو.

**تشریح**: قوله لما رأیت دا دقال مولنالپاره مقوله ده، الهمم دهمت جمع ده دقوي عزم او قصد په معنی سره ویل کیږي له همة عالیة، مائلة له مال یمیل څخه ده دمائل کیدلو په معنی، الطباع دطبع جمع ده پیدائشي عادت ته ویل کیږي، راغبة له رغب یرغب څخه په معنی دخوښولو او خواهش کولو ده او که یې صله عن راغلی وو نو بیا په معنی داعراض کولو، مخ گرځولو او بې التفاتي سره ده، الخص له لخص یلخص تلخیص څخه دی دمختصر کولو، خلاصه رایستلو او له لږو الفاظو څخه دډیري معنی اداء کولو په معنی ده، الوافی دمصنف صاحب یومبسوط کتاب دی په کوم کې چې دهدایه، قدوری او غیره مسائلي ذکر کړي دي، تتوفر دزیاتیدلو په معنی، عائدة دعائد مؤنث دی په معنی دنیکې صله او منفعت جمع یې عوادا و عوائد راځي، فشرعت دا دشرط محذوف لپاره جزاده ای اذا کان الامر کذلک فشرعت، التماس په معنی دطلب کولو دی ویل کیږي التمس الشئ من فلان، اعیان دعین جمع ده په معنی دعین الشئ او په معنی دخیار الشئ دلته په معنی داشرافو او اکابرو ده، الافاضل دافضل جمع ده په فضل کې دلورشوی په معنی اعیان الافاضل په معنی دپه فضل کې لورشوي، الافاضل الاعیان له اعیان څخه مراد علماء دي ځکه چې علماء خیار الناس

دي نواعيان الافاضل هغه علماء دي کوم چې په علوموکې انتهاته رسيدلي وي چې له هغوئ څخه دهيچامرتبه لوړه نه وي ماسواله انبيا وعليهم السلام څخه ،اوله افاضل الاعيان څخه هغه علماء مرادي کوم چې منتهي نه وي اوس دانتهائي فضيلت په تلاش کې وي اللهن هم بمنزلة العين دايې دافاضل الاعيان صفت بيان کړی دی چې داپه منزله دکسی دی سترګې لره اوپه منزله دسترګې دی انسان لره الانسان بفتح الهمزه دسترګې دکسی په معنی دی په کوم چې الله تعالی نورپيدا کړی دی چې په هغه انسان ليدنه کوي جمع يې اناسی اناسيه اواناس راځي الانسان بکسرالهمزه په معنی دادمی سره دبشردجنس په افرادويې اطلاق کيږي العين دسترګې، دسترګي دکسي په معنی اوپه بانه وغيره پرتولويې اطلاق کيږي العوائق دعائق جمع ده دموانع اوهرمنع کونکی شي په معنی ده.

وَصَنَّفْتُهُ بِكَنْزِ الدَّقَائِقِ وَهُوَ وَإِنْ خَلَا عَنِ الْعَوِيصَاتِ وَالْمُعْضِلَاتِ فَقَدْ تَحَلَّى بِمَسَائِلِ الْفَتَاوَى وَالْوَاقِعَاتِ مُعَلَّمًا بِتِلْكَ الْعَلَامَاتِ وَزِدْتُ الطَّاءَ لِلْإِطْلَاقَاتِ وَاللّٰهُ الْمُوَفِّقُ لِلْإِتْمَامِ وَالْمُيَسِّرُ لِلْاخْتِتَامِ

**ترجمه**: اومانوم کښيښود دده کنزالدقائق، اوداکه څه هم خالي دی له سختواوپېچلومسئلوڅخه مګرښائسته دی په فتاواوو، اونويوپيښيدونکومسئلوباندې حال داچې هغه دوافی علامې دلته هم ماورکړي دي اودطاءپه زياتوني سره داطلاقاتوطرف ته اشاره کونکې يم اوخاص الله ﷻ توفيق ورکونکې دی دپوره کولو اوهغه اسانه کونکې دي ددې دختمولو.

**تشريح**: دکنزنوم ايښودل دهغه ډيرومسائلوله کبله دی چې په دې کتاب کې جمع شوي دي اودقائق ته يې داضافت وجه داده چې دده مسائل دقيق دي کوم چې دقيق فکرته احتياج لري خلی يخلوخلواخالی کيدل ،العويصات ،دعويصة جمع ده په معنی دسخت،العويص من الکلام چې په هغه پوهيدل ګران وي ،المعضلات ،دمعضلة جمع ده پېچلي اومشکلي مسئلي ته ويل کيږي ،تحلی په معنی دښائسته کولو، ګينه اغوستلو ،مسائل الفتاوی والواقعات دمفتی به مسائلواونويوپيښيدونکو واقعاتواوحوادثوپه معنی، اودايې هم مطلب کيدای شي چې فتاوی اوواقعات دي دووکتابونومان وي مصنف صاحب فرمايې چې زماکتاب ددې دواړوکتابونوپه مسئلومزين دی ،معلماله اعلم څخه دی په معنی دنښې اوعلامې لګولوسره، ويل کيږي خفيت معالم الطريق دلارې نښې پټې شوې ،معلمادتحلی له ضمير څخه حال دی يعنی په دې حال کې چې هغه علامې دلته هم مالګولې دي کومې چې په وافی کې شته هغه حروف يېمراددي له کوموڅخه چې يې دائمه ولورته اشاره کړې ده مثلاله ح.څخه دامام ابوحنيفه رحمه الله طرف ته اشاره ده له س څخه امام ابويوسف رحمه الله ته اوله م څخه امام محمد رحمه الله ته اوله زڅخه امام زفر اوله ک څخه امام مالک رحمه الله ته اوله ف څخه امام شافعی رحمه الله ته اشاره ده البته يوه علامه دلته زياته ده يعنی ط چې په هغې سره مسائلومطلقه و ته اشاره ده کومه چې په وافی کې نشته ،الموفق دتوفيق اسم فاعل دی په معنی دجعل اسباب العبد موافقة لمطلوبه خيرا کان اوشرا يعنی دمطلوب موافق اسباب پيدا کول خواه که مطلوب خيروي اوکه شر،الميسرله تيسير څخه په معنی دِاسانه کولوسره.

# كتاب الطهارة

## داکتاب دطهارت په بیان کې دی.

په کتاب الطهارة کې اضافت لامیه دی مضاف سره له مضاف الیه دمبتدا، محذوف لپاره خبردی تقدیردعبارت دادی هذاكتاب الطهارة ،یادفعل محذوف لپاره دمفعول کیدلوله امله منصوب دی تقدیر دعبارت دادی هاک کتاب الطهارة یاخذ کتاب الطهارة.

کتاب :دالفظ په اصل کې له کتب څخه مأخوذدی چې دهغه معنی جمع کول دي ویل کیږي. کتب الشئ ای جمعه.دعربی دقواعدوله نظره کتاب مصدردی لیکن دمکتوب په معنی کې استعمالیږي یعنی جمع کړل شوی شی ،دتحریرپه ذریعه حروف اومعاني جمع کیږي ځکه نولیکلوته هم کتابت ویل کیږي اوله همده څخه دکتیبه (په معنی دلښکر)لفظ هم مأخوذ دی ځکه چې هغه دپوځیانویولوی تعداد جمع کوي ،په اصطلاح کې کتاب دمسائلوهغه مجموعي ته ویل کیږي کومې چې مستقلا معتبري وي خواه که په مختلفوانواعومشتملې وي اوکه نه وي ،دځینوعلماورأیه داده چې که دجنس مسائلوییان په نظرکې وونودکتاب عنوان ورکول کیږي ځکه چې جنس متعددوانواعوته جامع وي اودکتاب لغوي معنی هم جمع ده اوکه صرف دیوي نوعي مسائلوبیانول په نظرکې وونوهغه ته دباب عنوان ورکول کیږي ځکه چې دیوه لغت مطابق دباب معنی نوع ده اوکه دځینوجزئیاتوله ماقبل څخه جلابیانول مقصودوو نوهغه ته دفصل عنوان ورکول کیږي ځکه چې هغه له ماقبل څخه ممتازاو جلادي.

طهارت (بفتح الطاء) په معنی دنظافت اوپاکوالی ،او(بکسرالطاء) په معنی دآله طهارت او(بضم الطاء)له پاکې حاصلولو څخه وروسته چې له آله طهارت څخه څه پاته شي،په معنی دی ،اوشرعًاله محل څخه دنجاست حقیقیه اوحکمیه لرې کولوته طهارت ویل کیږي (نجاست حقیقیه لکه بولي ،گندګې وغیره اوحکمیه لکه حدث اصغراواکبر).

دطهارت ډیري انواعې اوډیراقسام دي مثلاً دجامو پاکوالی،دبدن پاکوالی اودځای پاکوالی. په اوبوپاکوالی ،په خاوري سره پاکوالی ددي اقسامو په اعتبارسره باید دطهارت لفظ جمع راوړل شوی وای مګرځرنګه چې طهارة مصدردی اومصدرتثنیه اوجمع نه وي ځکه مفردذکرشو.

مصنف صاحب رحمه الله ترتولووړاندي کتاب الطهارة په دي وجه ذکرکړچې ددین داموروړمدار په پنځوشیانودی اعتقادات، آداب، عبادات،معاملات،اوعقوبات،اولني دوه قسمه خوپه فقه کې داخل نه دي ځکه مصنف صاحب رحمه الله هغه دواړه پریښي دي دپاتي دریوهر یوه پنځه پنځه قسمه دي، دعباداتوپنځه قسمه صلوة،زکوة،صوم،حج اوجهاددي .دمعاملاتوپنځه قسمونه معاوضات مالیه، مناکحات. مخاصمات، امانات،اوترکات دي ،دعقوباتوپنځه قسمونه قصاص حدسرقه. حدزنا،حد قذف،اوحد ردّت دي .په دوئ کې یې عبادات داهتمام شان په وجه مخته کړي دي ځکه چې بندګان دهمدي عبادت لپاره پیداکړل شوي دي لقوله تعالی ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ اوپه عباداتوکې صلوة مهتم بالشان دی ځکه چې په کلام پاک کې په کثرت سره له ایمان څخه وروسته دصلوة ذکرراغلی دی كقوله تعالی ﴿الذين

يُؤْمِنُونَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيمُونَ الصَّلوٰةَ﴾ بيايې پرصلوة باندې طهارة ځکه مخته کړچې دنبی کریم ﷺ په ارشاد ﴿مِفْتَاحُ الصَّلٰوةِ الطُّهُوْرُ﴾کې طهارة ته دلمانځه کیلی (چابی) ویل شوی ده.

(۱)فرض الوضوء غسل وجهه (۲)وهو من قصاص الشعر الى أسفل الذقن والى شحمتي الأذن (۳)ويديه برفقيه ورجليه بكعبيه (۴)ومسح ربع رأسه(۵)ولحيته

**ترجمه**: داوداسه فرضونه دلمونځ کونکي خپل مخ پرېمنځل، او هغه (په اوږدوالی کې) دتندی له ویښتانو څخه بیا دزنې ترلاندې پورې او (په ساره کې) دغوږونوترنرمیوپورې ده، اودواړه لاسونه سره له څنګلوپرېمنځل دي اودواړه پښې سره له بجلکوپرېمنځل دي، اومسح کول دي دځلورمې دسراودږیرې.

**تشریح**: مصنف صاحب رحمه الله داوداسه احکام دغسل تراحکامومخکې ذکرکړي دي ځکه چې داوداسه ضرورت دغسل په نسبت ډېردی، اوهمداشان داوداسه محل دبدن جزء دی اودغسل محل کل (ټول) بدن دی اوجزءپرکل مخته وي ځکه یې داوداسه احکام اول اودغسل احکام وروسته ذکرکړل اوهمداسې دکتاب الله داقتداء له امله یې داترتیب ایښی دی ځکه چې په کتاب الله کې داودس اوغسل احکام په دغه ترتیب سره بیان شوي دي.

**ف**: فرض لغةً دتقدیرپه معنی دی اوشرعاً هغه حکم ته ویل کیږي چې دهغه کول ضروري وي اودهغه لزوم له داسې دلیل قطعي څخه ثابت وي چې په هغه څه شک اوشبه نه وي، په فرض اوواجبوکې فرق دادی چې فرض له دلیل قطعي څخه په صراحت اووضاحت سره ثابت وي اوواجب یاپه داسې دلیل ثابت وي چې هغه یقیني نه وي لکه خبرواحد، یاخودلیل یقیني وي لیکن معنی یې له ابهام څخه خالي نه وي دفرضوپرېښودنکی بې له عذره دعقاب مستحق دی اودبغیرله تاویله دفرضومنکرکافردی.

**ف**: غسل په معنی دپرېمنځلو، اودپرېمنځلواندزاه داده چې داوبوڅاڅکې توی شي لږترلږه ددوو څاڅکوتویدل ضروري دي کنه له دوڅاڅکوڅخه دلږود څڅیدوپه صورت کې اودس نه صحیح کیږي ځکه چې ددوڅاڅکوپه تویدلوسره صرف فرضیت اداء کیږي سره له کراهته، نولهذا بغیرله کراهته داوداسه اندازه داده چې له دوڅاڅکوڅخه زیات توی شي ، وفي الفیض: اقله قطرتان في الاصح، قال ابن عابدین شامي رحمه الله: ثم لایخفی ان هذابیان للفرض الذي لایجزئ اقل منه ......وسیأتي ان التقتیر مکروه، ولایمکن حمل التقتیر علی مادون القطرتین لان الوضوء لایصح حینئذ لماعلمت، فتعین انه لاینتفي التقتیر الا بالزیادة علی ذالک بأن یکون التقاطر ظاهراً لیکون غسلاً بیقین. (الدر المختار مع الشامیه ۱/۷۱)

**ف**: فقهاودغَسل (بفتح الغين) اوغُسل (بضم الغين) په منځ دافرق کړی دی چې غَسل (بالفتح) له یوشی څخه خیري داوبوپه ذریعه لرې کولوته ویل کیږي اوغُسل (بالضم) دټول بدن دپرېمنځلونوم دی اوهغه اوبوته هم ویل کیږي په کوموچې بدن پرېمنځل کیږي، اوغِسل(بالکسر) هغه شی ته ویل کیږي چې په هغه سرپرېمنځل کیږي مثلاًګل خطمی وغیره.

**ف**: په غسل وجهه کې دغسل اضافت وجهه ته داضافة المصدرالی المفعول له قبیلې څخه دی اوفاعل محذوف دی تقدیریې دادی غسل المتوضي وجهه او دوجهه ضمیردغه فاعل یعنی متوضی ته راجع دی.

**ف**: لفظ وضوء که دواؤپه پیش سره وونو معنی یې فعل وضوء ده یعنی داوداسه اندامونوپرېمنځل، او که په واؤزور وو نو ددو معناګانولپاره راځي اودس کول، اودوهمه معنی یې هغه اوبه په کوموچې اودس

وشي په اصل كې دالفظ له وضاءت څخه مأخوذ دى چې دهغه معنى ځلا ،اوښائست اونظافت ده نوداوداسه فعل ته وضوء يا په دي وجه ويل كيږي چې له ده څخه پاكي اوصفائي حاصليږي اويا په دي وجه چې داوداسه په بركت به په اخرت كې مؤمن داوداسه اندامونه روښانه وي لماورد فى الحــــديث.

(١)په اوداسه كې څلورشيان فرض دي نمبر١ :دمخ پريمنځل. نمبر٢ :دلاسونوپريمنځل ترڅنګلوپوري. نمبر٣ :دپښو پريمنځل تربجلكو(ښيديو)پوري. نمبر٤ :دسرمسح كول ،دليل يې دالله ﷻ داقول مبارك دى ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾(اى ايمان والاوو كله چې تاسي لمانځه ته دولاړيدواراده وكړى نوخپل مخونه اوخپل لاسونه سره له څنګلو ومينځئ اوپه خپلوسرونومسح وكړئ اوخپلي پښي دبجلكوسره ومينځئ).

(٢)الغسل (بفتح الغاف وضم الغاف)دواړه مستعمل دى ،دمخ دپريمنځلواندازه دسرد ويښتانو دشنه كيدوله اخرڅخه نيولې دزني ترلاندي پوري په اوږدوالى كې اوديوه غوږله نرمۍ څخه بيادبل غوږ ترنرمۍ پوري په ساره كې ده ښه داوه چې الى شحمتى الاذنين ويل شوي واى ځكه چې ديوه غوږدوه نرمۍ نه وي.

(٣)قوله ويديه مع مرفقيه اى وغسل يديه مع مرفقيه ،يعنى دواړه څنګلي په غسل يدين كې اودواړه بجلكي په غسل رجلين كې داخلي دي ،مرفقان دمرفق تثنيه ده مرفق دميم په كسره اودفاء په فتحه سره ده اوددي عكس هم صحيح دى دبازواوكلائى بندته مرفق ويل كيږي ،كعبان دكعب تثنيه ده دلته مراددپنډۍ له هډوكي سره متصل راوتلى هډوكى دى فماروى هشام عن محمد انه على ظهر القدم عند معقد الشراك سهو منه.

### دڅنګلوپه باره كې اختلاف ائمه

ف :دڅنګلواوبجلكوپه باره كې دائمه ثلاثه (امام ابوحنيفه ،امام ابويوسف اوامام محمد رحمهم الله)اوامام زفر رحمه الله اختلاف دى دائمه ثلاثه په نزدڅنګلي اوبجلي په پريمنځلوكې داخلي دي يعنى دهغو پريمنځل هم فرض دي دامام زفر رحمه الله په نزدفرض نه دي دامام زفر رحمه الله دليل دادى چې په آيت مباركه كې الى المرافق او الى الكعبين دانتهاء په طرز ذكرشوي دي اوداقاعده ده چې دكوم شى انتهاء بيان شي نوانتهاء په هغه شى كې داخله نه وي لكه څرنګه چې دروژې په باره كې الله ﷻ فرمايي ﴿واتموا الصيام الى الليل﴾په دي كې الى الليل دانتهاء په طورذكرده اوبالاتفاق شپه په روژه كې داخله نه ده نوهمداشان څنګلي اوپيدي په غسل كې داخلي نه دي.

دائمه ثلاثه دليل دادى چې انتهاء كله داسقاط ماوراء لپاره ذكركيږي لكه په الى المرافق او الى الكعبين كې ځكه چې كه دااسقاط ماوراء لپاره نشي نوبيادلاس تراوږي پوري دپريمنځلوحكم واى اوس الى المرافق دابيان كړه چې له څنګلو څخه ماوراء له پريمنځلوڅخه ساقط دي اوكله انتهاء دامتدادحكم لپاره ذكركيږي لكه په ﴿اتموا الصيام الى الليل﴾ كې ځكه چې دصوم اطلاق په يوګړى امساك باندي هم كيږي نوالى الليل داحكم ترشپې پوري وغځواوه البته شپه په كې داخله نه ده.

ف: دا ئمه ثلاثه قول راجع دى لمافي شرح التنوير: والمرفقان والكعبان يدخلان في الغسل عند علمائنا الثلاثة (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۱/۵۴)

ف: مسح په لغت كې په يوشى لاس تيرولوته ويل كيږي او اصطلاحي معنى يې داده چې لوند لاس په يوه اندام تيرول خو اكه لوندوالى داوبوله لوشي اخيستل شوي وي اوكه ديو مغسول اندام له پريمنځلو وروسته پاته وي په دې ډول چې په چپه لاس له اوبوتويولو وروسته په راسته لاس كې لوندوالى پاته شي اوپه كوم لاس كې چې لوندوالى پاته دى هغه په چپه لاس يا يو بل اندام باندنه وي تيرشوى لمافي الدر المختار: ولو باصابة مطر او بلل باقي بعد غسل على المشهور وفي الشامية (قوله على المشهور) مقابله قول الحاكم بالمنع وعطاه عامة المشائخ وانتصر له المحقق ابن الكمال وقال: الصحيح ماقاله الحاكم ،وفي تقريرات الرافعي: وفق الرحمتي بين روايتي الصحة وعدمها على مانقله السندى بحمل المشهور على ما اذابقي بلل في كفه بعد اسالة الماء على ذراعه اليسرى من غيران يدلكه وحمل مقابله على ما اذا دلك العضو المغسول بعد اسالة الماء عليه (الدر المختار مع الشامية والتقريرات: ۱/۷۱)

(۴) قوله ومسح ربع رأسه اى فرض الوضو مسح ربع رأسه .يعني داو داسه په فرائضو كې يو فرض دسر د څلورمې حصې مسح كول دي،دسرمسح بالاتفاق فرض ده البته په مقدار مفروض (چې څومره اندازه فرض ده) كې اختلاف دى داحنافو په نزد ربع رأس (دسر څلورمه حصه) مسح فرض ده خواه كه له هره طرفه وي،دامام شافعي رحمه الله په نزدد مطلق سرمسح فرض ده لهذا كه په دريو ويښتانو مسح وشي نو فرض اداء كيږي.دامام مالك رحمه الله اوامام احمد رحمه الله په نزدد ټول سرمسح فرض ده ، داحنافو دليل دادى چې آيت مبارك ﴿وامسحوا برؤسكم﴾ دمقدار مسح په باره كې مجمل دى او مجمل بيان ته ضرورت لري دلته دحضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه حديث دمجمل بيان دى چې نبي كريم ﷺ ديو قوم ډيران ته تشريف راوړى اوله اودس مات وروسته يې اودس وكړاو مسح يې وكړه په خپلې ناصيه اودواړو موزوباندې .

ف: مقدار ناصيه اودسر څلورمه حصه سره يودي ځكه نو داحنافو په نزدد څلورمې حصې مسحه فرض ده په حديث شريف كې ناصيه ذكرشوي ده مګردناصيه څه خصوصيت نشته بلكه دناصيه په اندازه چې له هرخايه مسح وشي كافي ده مقدار ناصيه ته مصنف صاحب رحمه الله دسر څلورمه ويلې ده اوځينې مشائخ ددريو ګوتو اندازه ورڅخه مرادوي .

ف: صرف دڅلورمې حصې دمسح عادت جوړول ترك سنت دى لمانځه ته يې دااثر رسيږي چې دلمانځه صحت اختلافي كيږي دوهم له ددې سنت په پريښودلو سره طهارت ته نقصان رسيږي له كوم ځخه چې په ځينو جزئياتو كې په امامت دكراهت حكم شوى دى. (امداد الفتاوى ،۱/۲۷ - ملتان)

## دلحيې دمسح حكم

(۵) قوله ولحيته داپر راسه باندې عطف دى يعنې دږيرې دڅلورمې حصې مسح هم فرض ده داله امام ابوحنيفه رحمه الله څخه دحسن بن زياد رحمه الله روايت دى ځكه چې دماتحت اللحيه غسل څرنګه چې مشكل دى نودجيرې په ډول يې مسح لحيه واجب وګرځوله اوپه ممسوح اعضاوكې قاعده داده چې دټول عضواستيعاب واجب نه وي نولهذا دږيرې دڅلورمې حصې مسح واجب شوه داهم جائزده چې په لفظ ربع

باندي معطوف شي په دي صورت کې معنی داده چې دسر د څلورمي مسح فرض ده او دټولي ږيري مسح هم فرض ده داله امام ابو يوسف رحمه الله څخه يو روايت دی .

**ف**:لحيه پر دو قسمه ده ،خفيفه او کثه ،خفيفه هغه ده له کومې څخه چې دمخ پوستکی ښکاريږي ددي حکم دادی چې دمخ پوستکی ته اوبه رسول ضروري دي صرف ږيره لندول يا مسح کول کفايت نه کوي ، کثه (گڼه ږيره )هغه ده له کومې څخه چې دمخ پوستکی نه ښکاريږي په دي باره کې داحنافو اختلاف دی اصح قول دادی چې په دي صورت کې دمخ پر ځای دټولي ږيري پريمنځل فرض دي مګرله دي څخه هغه ږيره مراد ده چې دمخ په برابري کې وي لاندي ځوړنده حصه په دي کې داخله نه ده دهغې نه پريمنځل فرض دي او نه مسح کول ،البته مسح کول يې سنت دي لمافي الدرالمختار:ان المسترسل لايجب غسله ولامسحه بل يسن (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۱/۷۵)له دي قول څخه علاوه نورقولونه مرجوح دي هغه دادي مسح الكل،مسح الثلث،مسح الربع،مسح مايلاقي البشرة،غسل الثلث،غسل الربع،عدم الغسل والمسح.

**ف**: اودس کونکې که له اوداسه وروسته نوکان پري کړل يا يې بريتونه وغيره وخريل نوپرده داودس اعاده ضروري نه ده، لمافي التنوير:ولايعادالوضوء.....................بحلق شاربه وحاجبه وقلم ظفره (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۱/۷۵)

**ف**: بريتونه ،وريځي اوڅونډواوږيري په منځ کې وېښتان که دومره کم ووچې له هغوڅخه پوستکی ښکاريدونو دهغو حکم دلحيه خفيفه دی يعنی پوستکی ته اوبه رسول ضروري دي اوکه ډيرووله کوموڅخه چې پوستکی نه ښکاريدونو بيا پوستکی ته اوبه رسول ضروري نه دي اوکه بريتونه دومره اوږده وو چې دښونډوسرخي يې پټه کړي وه نودسرخي ځای پريمنځل فرض دي لمافي شرح التنوير:وفي البرهان يجب غسل بشرة لم يسترها الشعر كحاجب وشارب وعنفقة : قال ابن عابدين:(قوله لم يسترها الشعر) اماالمستور فساقط غسلها للحرج ويستثنى منه مااذاكان الشارب طويلاً يسترحمرة الشفتين لمافي السراجية من ان تحليل الشارب الساترحمرة الشفتين واجب(الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۱/۷۵)

**الحكمة**: كلنايعلم ان الانسان اذاكان قذرالثياب والاعضاء اشمأزت منه النفوس وتحولت عنه القلوب والعيون وكذالك اذااراداحدان يقابل ملكااواميراً فلابدّ من ان يلبس احسن الثياب وانظفها ويزيل ماعلى جسمه من الاوساخ والادران ومافي حكم هذاحتى لايراه في حالة تبغضه اليه ,واذاكان الامر كذلك مع المخلوقين بعضهم لبعض فكيف يكون حال من يقف بين يدى رب الارباب وملك الملوك؟ان الشارع الحكيم فرض الوضوء والغسل لاجل ان يكون الانسان خاليامن الاقذار والاوساخ عنداداء الفريضة(حكمة التشريع)

## داوداسه دسنتونوبيان

(۱)وسننه غسل يديه الى رسغيه ابتداءً(۷)كالتسمية(۸)والسواك(۹)وغسل فمه(۱۰)وانفه بمياه(۱۱)وتخليل لحيته(۱۲)واصابعه (۱۳)وتثليث الغسل(۱۴)ونيته(۱۵)ومسح كل راسه مرةً(۱۶)واذنيه بمائه(۱۷)والترتيب المنصوص(۱۸)والولاء

**ترجمه**:اوداوداسه سنتونه پريمنځل دي دځيلولاسونوترېند وپوري په پيل کې ،لکه څرنګه چې په پيل کې بسم الله ويل ، اومسواک وهل،اوخوله پريمنځل ،اوپوزه پريمنځل په جلا جلا اوبو سره ،اوخلال دږيري،اودګوتو ،اوداعضاء اودس دري ځله پريمنځل ، اوداوداسه نيت کول ،اودټول سرمسح کول يو ځل،

او د دواړو غوږونو مسح کول د سر په اوبو سره، او د منصوص ترتيب لحاظ کول، او اندامونه پرله پسې پريمنځل.

**تشريح** :سنت .لغة سنت مطلق طريقي ته ويل کيږي خواه که ښه وي او که ښه نه وي او د شريعت په اصطلاح کې سنت هغه ته ويل کيږي په کوم چې نبی کريم ﷺ او يا د نبی کريم ﷺ له صحابه کرامو ﷺ څخه يوه علی وجه العبادة له کله کله پرېښو د وسره هميشه والی کړی وي.

**ف**:د سنت عمل کونکي ته ثواب ورکول کيږي او پرېښودونکی يې د ملامتيا مستحق ګرځي فقيه ابو الليث رحمه الله فرمايي چې تارک سنت فاسق دی او منکر سنت مبتدع دی .او نفل هغه دي چې نه يې تارک فاسق دی او نه يې منکر مبتدع دی. مصنف رحمه الله د اوداسه د فرائضو له بيانولو څخه وروسته د اوداسه په سنتونو شروع کولو سره دي خبري ته اشاره وکړه چې په اودس کې واجب نشته که وای نوله نوله فرائضو وروسته به يې واجب ذکر کول.

(۷)د اوداسه په سنتونو کې ترټولو لومړی سنت د متوضی(اودس کونکی)د اودس په پيل کې دواړه لاسونو ترېند وپوري پريمنځل دي ځکه چې د نبی کريم ﷺ ارشاد دی چې کله چې په تاسي کې ځوک له خوب څخه راپاڅي نو خپل لاسونه دي په لوښي کې نه اچوي ترڅو چې يې دري ځلي ونه وينځي ،او لاسونه ترېند وپوري پريمنځل فرض دي ځکه لاسونه د پاکۍ آله دي لهذا د نورو اندامونو د پاکۍ په حاصلولو کې د لاسونو هم دومره اندازه پريمنځل کافی دی د لاسونو پريمنځل له استنجاء څخه مخکې هم سنت دي او وروسته هم سنت دي.

(۸)قوله کالتسمية ای کماان التسمية سنة فی الابتداء کذالک غسل اليدين. د اوداسه له سنتونو څخه دوهم سنت د اوداسه په پيل کې بسم الله ويل دي لقوله ﷺ ﴿لاوضوء لمن لابسم﴾ (يعنی چا چې د الله تعالی نوم ذکر نه کړ د هغه اودس نشته) مراد يې د اوداسه د فضليت نفی ده يعنی اودس يې بغير له تسميه صحيح ده مګر افضل نه ده.

**ف**:له سلفو څخه د بسم الله الفاظ مختلف منقول دي ځيني وايي(بسم الله العظيم والحمدلله علی دين الاسلام) دي وايي. ځيني وايي چې (بسم الله الرحمن الرحيم) دي وايي،او ځيني وايي چې که (لااله الاالله يا الحمدلله يا اشهدان لااله الاالله)يې وويله نو هم سنت اداء کيږي او صحيح هم همداده چې په هرقسم ذکر کولو سره سنت اداء کيږي لمافی شرح التنوير:والبداية بالتسمية قولاً ،وتحصل بکل ذکر (الدر المختار علی هامش رد المحتار: ۱/۸۰)

(۹)قوله والسواک ای واستعمال السواک، يعنی له مسواک څخه د مسواک وهل مراد دي ځکه چې نفس مسواک سنت نه دی د مسواک وهل سنت دي د اوداسه له سنتونو څخه دريم سنت مسواک وهل دي ځکه چې نبی کريم ﷺ په مسواک وهلو باندي مواظبت کړی دی او د نبی کريم ﷺ فرمان دی ﴿لولا ان اشق علی امتی لامرتهم بالسواک عند کل وضوء ﴾ (يعنی که د امت لپاره سخت نه وای نو ما به دوئ ته له هر اوداسه سره د مسواک وهلو حکم کاوه).

**ف**: مسواک بايد عرضاً و وهل شي (د غاښونو عرض د خولي طول)او مسواک دي د ترخې وني وي د ګوتې په اندازه دي پلن وي او ديوي لويشتي په اندازه دي اوږد وي د مسواک د نيولو سنت طريقه داده چې د ښی لاس

خچې. گوته ترمسواک لاندې وي او خنصر، بنصر او سبابه پورته وي او بټه گوته دمسواک دسر لورته لاندې وي مسواک په مټ کې خلاف سنت مه نيسئ لانه يورث الباسور.

ف: مستحب داده چې مسواک ديوې لويشتې په اندازه وي، له پيل څخه تريوې لويشتې دکم مسواک جوړول داستحباب خلاف دي او که له استعماله وروسته کم شي نو څه پرواه نه لري لمافي الشاميه (قوله وطول شبر) الظاهر انه في ابتداء استعماله فلايضر نقصه بعد ذالک (رد المحتار: ١/٨٥) مگر داسې مستحبات عموماً په اسانۍ وغيره باندې مبنې وي دا بايد شرعي حکم و نه گڼل شي.

ف: په امداد الفتاح کې ليکلي دي چې مسواک داودسه خاصيت نه دی بلکه له دې علاوه په نورو حالاتوکې هم مستحب دی مثلاً دخولې دبدبويي په وخت کې، له خوب څخه دپاڅيدلو په وخت کې، لمانځه ته دتللو په وخت کې، کورته دننوتلو په وخت کې، کوم مجلس يا اجتماع ته دتللو په وخت کې، دتلاوت کولو په وخت کې لقول ابي حنيفة رحمه الله ان السواک من سنة الدين فتستوي فيه الاحوال کلها (الشاميه مع الدر: ١/٨٣)

## دمسواک پرځای دغاښونو دواء استعمال

ف: دمسواک پرځای دغاښونو دوا، او برش وغيره په استعمالولو سره که څه هم دمسواک مقصد (يعنې پاکي او صفايي) خو حاصلېږي ځکه چې فقهاء ليکي چې دمسنون مسواک دنه وجود په صورت کې دجامې او گوتې په مښلو سره هم سنتِ مسواک اداء کېږي مگر څرنگه چې دمسنون مسواک وهل جلا سنت دی نو ښکاره خبره ده چې په برش وغيره سره داسنت نه اداء کېږي لهذا دمسواک دوهلو سنت صرف د زيتون، پيلو او نيم وغيره د درختو په مسواک سره حاصلېږي او ويل کېږي چې دا تر ټولو گټور هم دي.

(١٠) داودسه له سنتونو څخه لسم او پنځم سنت دخولې پريمنځل او په پوزه کې اوبه اچول دي ځکه چې درويشتو صحابه کرامو ﷺ دنبي کريم ﷺ داودسه طريقه نقل کړي ده دوئ ټولو په خوله پريمنځل او په پوزه کې اوبه اچول نقل کړي دي.

ف: دمضمضې او استنشاق طريقه داده چې اول به درې ځله خوله ومينځي او هرځل نوې اوبه استعمال کړي او بيا همدا شان درې واره پوزې ته اوبه واچوي او هرځل نوې اوبه استعمال کړي، دامام شافعي رحمه الله په نزد افضله داده چې په يوه لپه اوبو سره مضمضه او استنشاق دواړه وکړي داستنشاق لپاره نويو اوبو نه راواخلي داحنافو وشوافعو دا اختلاف دافضليت او نه افضليت دی دسنت يانه سنت اختلاف نه دی.

(١١) داودسه له سنتونو څخه شپږم سنت دږيرې خلالول دي، لقوله ﷺ ﴿اتاني جبرئيل فقال اذا توضئت فخلل لحيتک﴾ (نبي کريم ﷺ وفرمايل چې ماته جبرئيل عليه السلام راغی او ويې ويل چې کله اودس کوې نو خپله ږيره خلالوه). وعن عثمان رضي الله عنه ان النبي ﷺ کان يخلل لحيته (يعنې نبي کريم ﷺ خپله ږيره خلالوله).

ف: دتخليل لحيه (دږيرې خلالولو) په باره کې له علماو څخه څلور قولونه منقول دي. نمبر١ – واجب ده. دادسعيدبن جبير او عبدالحکم مالکي قول دی. نمبر٢/ له امام ابويوسف رحمه الله او امام شافعي رحمه الله او يو روايت له امام محمد رحمه الله څخه داده چې دږيرې خلالول سنت دی وهو الاصح لمافي ردالمحتار: ورجع في

المسوط قول ابي يوسف الخ وفي شرح المنية: والادلة ترجحه وهو الاصح (ردالمحتار:١/٨٦). نمبر ۳. دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد مستحب ده. نمبر ۴. له طرفینو څخه يو روايت دادی چې جائز ده.

(۱۲) قوله واصابعه ای ومن سنن الوضوء تخليل اصابعه، يعني داوداسه له سنتونو څخه او وم سنت دګوتو خلال ول دي لقوله ﷺ لابن عباس رضي الله عنهما اذا توضئت فخلل اصابع يديک ورجليک (کله چې ته اودس کوي نو دخپلو لاسونو او پښو ګوتي خلالوه).

**سوال**: نبی کریم ﷺ دامر په صيغه سره دخلال حکم کړی دی او امر دوجوب لپاره ده نو خلال اصابع (دګوتو خلالول) بايد واجب شي؟

**جواب**: څرنګه چې په اوداسه کې کوم واجب نشته څکه نو خلال اصابع هم واجب نه دی. او په اودس کې واجب په دي وجه نشته چې اودس دلمانځه شرط دی لهذا اودس دلمانځه تابع دی نو که په اوداسه کې واجب راشي نو تابع به له اصل سره برابر شي او همداشان په اودس کې دلاسونو او پښو پريمنځل فرض دي او په خلالولو سره په محل فرض کې اکمال راځي او په اودس کې چې په کومو شيانو سره دفرضو اکمال دهغوپه محل کې راځي هغه شی سنت وي په دي وجه تخليل اصابع سنت دی.

**ف**: دګوتو دخلالولو طريقه داده چې ديوه لاس باطن دبل لاس په ظاهر باندي کښيږدي او دلاندي لاس دګوتو خلال وکړي او دپښو دګوتو دخلالولو طريقه داده چې دچپه لاس خچې ګوته دپښو دګوتو په منځ کې داخله کړي او دراسته پښي دخچې ګوتي څخه به يې شروع کړي او دچپه پښې په خچې ګوته به يې ختم کړي ،هذاهو المذکور في الکتب المعتبرة.

(۱۳) قوله وتثليث الغسل ای ومن سنن الوضوء تثليث الغسل، يعني داوداسه په سنتونو کې اتم سنت دري دري ځله داندامونو پريمنځل دي﴿ لان النبی ﷺ توضامرة مرة وقال هذاوضوء من لايقبل الله الصلوة الابه وتوضامرتين مرتين وقال هذاوضوء من يضاعف الله له الاجرمرتين وتوضاثلثاثلثا وقال هذاوضوئي ووضوءالانبياء من قبلي فمن زادعلی هذاونقص فقدتعدی وظلم﴾ يعني نبی کريم ﷺ يو يو ځل اندامونه وپريمنځل او ويې فرمايل چې دادسي اودس دی چې له دي بغير الله تعالی لمونځ نه قبولي او دوه دوه ځله يې اندامونه وپريمنځل او ويې فرمايل دادهغه شخص اودس دی دچالپاره چې الله تعالی ثواب دوچنده کوي او دري دري ځله يې اندامونه وپريمنځل او ويې فرمايل دازما اودس دی او له ماڅخه دمخکينيو انبياو اودس دی نو که چا په دي باندي زيادت وکړاو يا يې له دي څخه کمښت وکړنو هغه له حد څخه تجاوز وکړ او ظلم يې وکړ.

**ف**: دحديث شريف په اخر کې چې فرمايلي دي چې فقدتعدی وظلم داوعيد هغه وخت دی چې يو څوک په دي اعتقاد سره په دري واره زياتوالی وکړي چې کامل سنت په دري ځله نه حاصليږي کنه دشک په صورت کې چې داطمينان قلب لپاره تردري ځله زيات وپريمنځل شي نو په دي صورت کې داوعيد نشته لمافی الشامية: من الاسراف الزيادة علی الثلاث ای فی الغسلات مع اعتقادان ذلک هوالسنة فاذالم يعتقدذالک وقصدالطمانينة عندالشک فلاکراهة (ردالمحتار:١/٩٧)

**ف**: په دي شرط چې داشک کله کله پيښيږي که نه چاته چې هميشه داشک وي او دوسواس په مرض اخته وي دهغه لپاره تردري ځلي زياتوب کولو په صورت کې داوعيد په هرحال کې ده او دي شخص ته ددي شک

لورته التفات كول په كارنه دي، قطعالمادة الوسواس لمافي الدر المختار: ولوزادلطمانية القلب ............ فلاباس وفي الشامية : وينبغي ان يقيدهذابغير الموسوس اماهو فيلزمه قطع مادة الوسواس عنه وعدم التفاته الى التشكيك لانه فعل الشيطان وقدامر نابمعاداته ومخالفته (الدر المختار مع الشامية: ١/٨٨)

(۱۴) قوله ونيته اى ومن سنن الوضوء نية الوضوء. يعني داوداسه له سنتونو څخه نهم سنت داوداسه نيت كول دي په نيت كې په څلوروخايونوكې خبره ده دنيت په صفت كې. دنيت په كيفيت كې. دنيت په وخت كې، اودنيت په محل كې.

دنيت صفت دامام قدوري رحمه الله په نزد استحباب دى يعني په اوداسه كې نيت مستحب دى ليكن دصاحب كنزالدقائق خبره صحيح ده چې نيت په اوداسه كې سنت ده لمافي الهندية: وعدالقدورى النية والترتيب والاستيعاب من المستحبات وعدهاصاحب الهداية والمحيط والتحفة والايضاح والوافي من السنن وهو الاصح (هندية: ١/٩)،

دنيت كيفيت دادى چې متوضى (اودس كوونكى) نويت ان اتوضأللصلوة تقربا الى الله. يانويت استباحة الصلوة. يانويت رفع الحدث، يانويت الطهارة وواېي دااخرني دوه ښه دي ځكه چې دااستباحة المصحف اودخول المسجد وغيره ته هم شامل دي په كوم وخت كې متوضى مخ مينځي دادنيت وخت دى اودنيت محل دمتوضى زړه دى په ژبه سره دنيت تلفظ كول مستحب دي.

## په اوداسه كې دنيت حكم

ف: داحنافو په نزد په اودس كې نيت كول سنت دي اودنورو ائمه وو په نزد فرض دي دهغوئ دليل دنبى كريم ﷺ دارشاد ﴿انما الاعمال بالنيات﴾ دى يعنى عملونه په نيتونو موقوف دي او اودس هم يو عمل دى لهذا دا به هم په نيت موقوف وي داحنافو دليل دادى چې نبى كريم ﷺ يوه كوچې ته داوداسه تعليم وركاوه مگر دنيت تعليم يې ورنه كړنو كه نيت فرض واى نونبى كريم ﷺ به ضرور هغه ته دنيت تعليم هم وركاوه.

(۱۵) قوله ومسح كل راسه مرة اى ومن سنن الوضوء مسح كل راسه مرة. يعني داوداسه له سنتونو څخه لسم سنت يو ځل دټول سر مسح كول دي امام قدوري رحمه الله دټول سر مسح مستحب بللي ده مگر صحيح قول دصاحب كنزالدقائق دى چې دټول سر مسح كول سنت ده ځكه چې حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه له نبى كريم ﷺ څخه دټول سر مسح كول نقل كړي دي ، وفي الهندية: الفصل الثالث في سنن الوضوء، ومنها مسح كل الرأس مرة كذافي المتون (هندية: ١/٧)

ف: دمسح لپاره دي يو ځل اوبه راوخيستلي شي نو كه چاپه نويواوبو سره له يو ځل څخه زياته مسح وكړه نودامكروه ده هو دي يو ځل اوبو په راخيستلو سره كه يې دوه يادري ځله په سرلاس تير كړنو څه پرواه نه لري ، لمافي الشامية: روى الحسن عن ابى حنيفة في المجرد: اذامسح ثلاثابماء واحد كان مسنونا........ لو مسح ثلاثابمياه قيل يكره وقيل انه بدعة وقيل لاباس به...... قلت: لكن استوجه في شرح المنية القول بالكراهة (الشامية: ١/٨٩)

## دسر دمسح طريقه

ف: دسر ده مسح كولو طريقه داده چې دواړه لاسونه لانده كړي اودهرلاس دري دري گوتي دسرپه مخكنۍ حصه كېږدي اوشهادت دواړه گوتې اوبټي گوتي اوورغوي جلاونيسي اوبياگوتې په كېنولو سره دشالورته ويسي اوبيادشاله لوري دواړه ورغوي دسرپه دواړه طرفوباندي په راكښولو سره دمخ طرف ته راوړي اوبيا په دواړوبټوگوتوسره دغوږونودبېكاره طرف اودشهادت په گوتوسره دغوږونوددننه طرف مسح وكړي په دي دول به دورغوواوبټوگوتودمستعملواوبوله دوهم ځل استعمال څخه وږغورل شي ،دمسح داخاصه طريقه صاحب منيه ليكلي ده مگرمحقق ابن الهمام ددي خاصي طريقي ترديدكړی دی چې ددي ثبوت په كوم روايت كې نشته بلاوجه تكلف دی ځكه چې په لاسونوچې كوم لوندوالی دی دی دهغه په تكراراستعمال كې كوم قباحت نشته ځكه چې اوبه ترهغه وخته مستعملي نه گرځي ترڅوچې له اندام څخه جلانه شي لماقال ابن عابدين وماقيل من انه يجافى المسبحتين والابهامين ليمسح بهما الاذنين والكفين ليمسح بهماجانبى الرأس خشية الاستعمال فقال فى الفتح لااصل له فى السنة لان الاستعمال لايثبت قبل الانفصال والاذنان من الرأس (ردالمحتار: ۸۹/۱)،نو دمسح مسنونه طريقه داده چې دسرپه اولنۍ حصي باندي ددواړولاسونوورغوي اوگوتې كېښږدي اوترغاړي پوري يې په داسي دول ويسي چې له دي څخه دټول سراحاطه وشي لمافى الشامية: والاظهر ان يضع كفيه واصابعه على مقدم رأسه ويمدهما الى القفاء على وجه يستوعب جميع الرأس(مخكنۍ حواله)

(۱۶)قوله واذنيه بمائه اى ومن سنن الوضوء مسح اذنيه بمائه ،يعني داوداسه له سنتونوڅخه يولسم سنت ددواړوغوږونومسح كول دي ځكه چې له حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی فرمايي ﴿الااخبركم بوضوء رسول الله فاخذغرفة فمسح برأسه واذنيه﴾ (يعني زه ته تاسي ته دنبی كريم ﷺ داوداسه طريقه نه دروښيم ؟بيايي يوه لپه اوبه راواخيستي اودسرمسح يې وكړه اودغوږومسح يې وكړه)

ف: پورته ذكرشوی حديث په دي لحاظ سره هم داحنافودليل دی چې دغوږومسح دسرله مسح سره مسنون ده په نورو اوبومسنونه نه ده ،دامام شافعي رحمه الله په نزددغوږومسح په نورواوبوسره مسنونه ده ځكه چې غوږونه مستقل اندام دي زموږدليل دنبی كريم ﷺ ارشاددی چې ﴿الاذنان من الرأس﴾ يعني دمسح په باب كې غوږونه له سرڅخه جلانه دي، دغوږودمسح طريقه داده چې په دواړوبټوگوتوسره دغوږوبېكاره طرف مسح كړي اودشهادت دگوتوپه باطن سره دغوږوباطن مسح كړي اودغوږوپه غارونوكې گوتې دننه كول ادب دي سنت نه دي.

ف: البتة كه په سرله مسح كولووروسته په لاسونوكې لوندوالی پاته نه شونودغوږولپاره نوري اوبه راخيستلی شي لمافى الشامية: قال فى الفتح: واذاانعدمت البلة لم يكن بدمن الاخذ(ردالمحتار: ۹۰/۱)

(۱۷)قوله والترتيب المنصوص اى ومن سنن الوضوء الترتيب المنصوص ،يعني داوداسه له سنتونوڅخه دولسم سنت داده چې په هغه ترتيب سره اودس وكړه په كوم ترتيب چې الله تعالی اعضاء وضوپه قرآن كريم كې ذكركړي دي دامام قدوری رحمه الله په نزدپه اوداسه كې ترتيب مستحب دی مگردكنزالدقائق دمصنف خبره صحيح ده چې په ترتيب سره اودس كول هم سنت دي لمافى الهندية: وعدالقدورى النية والترتيب والاستيعاب من المستحبات وعدهاصاحب الهداية والمحيط والتحفة والايضاح والوالجي من السنن وهو الاصح(هنديه: ۸/۱)

**ف**:دامام شافعي رحمه الله په نزد په ترتيب سره اودس كول فرض دي ځكه چې په ايت كريمه ﴿إذا قمتم إلى الصلوة فاغسلوا وجوهكم الاية﴾ كې فاء دتعقيب لپاره ده اوتعقيب دترتيب په معنى دلالت كوي ځكه چې دتعقيب معنى ده دمابعد په ماقبل مرتب كيدل نوله ايت څخه دقيام الى الصلوة(دلمانځه لپاره دريدل) اوغسل وجه په منځ كې ترتيب ثابت شواو څرنګه چې پاتې اعضاء په غسل وجه باندې معطوف دي نو په دې وجه به په هغو كې هم ترتيب ثابت وي.

زموږ دليل دادى چې كه چيرته موږ داتسليم هم كړو چې فاء دتعقيب لپاره ده نو ددې مطلب دادى چې داعضاء اربعه و دمجموعي غسل په قيام الى الصلوة مرتب دى نو دقيام الى الصلوة اوداعضاء اربعه دمجموعي په غسل كې ترتيب ثابتيږي نه داعضاء اربعه تر منځ ، ځكه چې داعضاء اربعه په منځ كې واؤ ذكر شوى دى اوداهل لغت اجماع ده چې واؤ دمطلق جمع لپاره راځي مګر څرنګه چې نبى كريم ﷺ دقران په ذكر شوى ترتيب سره اودس كړى دى په دې وجه په اوداسه كې ترتيب سنت دى.

(**١٨**)قوله والولاء اى ومن سنن الوضوء الولاء، يعني داوداسه له سنتونو څخه ديارلسم سنت دادى چې داوداسه اندامونه پرله پسې پريمنځل شي په دې ډول چې ديوه اندام له وچيدلو څخه مخكې بل اندام پريمينځي ديوه اندام له پريمنځلو وروسته دبل اندام په پريمنځلو كې دومره ځنډ كول چې اولنى اندام وچ شي دسنت خلاف دى (په دې شرط چې داندامونو وچيدل دكوم عذر يا تيز باد يا داودس كونكي په بدن كې دسختې ګرمى له امله نه وي )ځكه چې نبى كريم ﷺ اودس پرله پسې كاوه، دامام مالك رحمه الله په نزد توالى فى الوضوء(په اوداسه كې پرله پسې اندامونه پريمنځل ) فرض دي .

## داوداسه دمستحباتو بيان

(١٩)ومستحبة التيامن (٢٠)ومسح رقبته

**ترجمه**:اوداوداسه مستحبات له راسته اندامه شروع كول ،اودغاړې مسح كول دي .

**تشريح**:مستحب په لغت كې محبوب اوښه ته ويل كيږي اوداصوليينو په اصطلاح كې مستحب هغه دى په كوم چې نبى كريم ﷺ مواظبت(هميشه توب ) نه وي كړى اودكوم په باره كې چې نبى كريم ﷺ رغبت ښكاره كړى وي كه څه هم پخپله نبى كريم ﷺ هغه نه وي كړى ،مستحب ،مندوب اوادب ټول سره يو دي .

(١٩)داوداسه له مستحباتو څخه يو دادى چې داندامونه دپريمنځلو په وخت كې له راسته اندامه شروع وكړل شي نو په لاسونو اوپښو كې اول راسته لاس اوراسته پښه پريمنځل شي بيا چپه ،ولى چې نبى كريم ﷺ په هرشي كې له ښي اړخه شروع كول خوښول تردې چې په پائزارپښو كولو كې يې هم اول ښى پائزارپښو كول خوښاوه ،قول صحيح هم همدادى چې تيامن(له ښى اندامه شروع كول ) مستحب دى .

**سوال**:په تيامن باندې خونبى كريم ﷺ مواظبت كړى دى بايد چې سنت واى ؟

**ځواب**:دنبى كريم ﷺ مواظبت على سبيل العادة (دعادت په ډول) وونه على سبيل العبادة ،اوپه سنتو كې مواظبت على سبيل العبادة معتبر دى .

(٢٠)قوله ومسح الرقبة اى ومن مستحبات الوضوء مسح الرقبة،يعنى داوداسه له مستحباتو څخه يودادى چې ددواړولاسوپه شاباندي دغاړي مسح وكړي دلاسونوپه شاباندي دمسح كول وجه داده چې دشادلوري اوبه تراوسه پوري نه دي مستعملي شوي ،دصحيح قول مطابق مسح رقبة(دغاړي مسح) مستحب ده ځكه چې دنبى كريم ﷺ داوداسه په طريقه كې مروى ده چې ومسح على راسه للاثاروظاهرادليه للاثاروظاهررقبه الخ وفى الشاميه :ومستحبه الثيامن ومسح الرقبة لاالحلقوم(ردالمحتار: ١/٣١)دځينوپه نزددغاړي مسح سنت ده اودځينوپه نزدنه سنت ده اونه مستحب اودځينوپه نزدبدعت ده مګردحلقوم (غاړي) مسح بدعت ده .

ف:واضحه دي وي چې داوداسه مستحبات نورهم ډيردي لمافى فتح القدير ان المندوبات نيف وعشرون لترك الاسراف والتقتير وكلام الناس والاستعانة والتمسح بخرقة يمسح بهاموضع الاستنجاء ونزع خاتم عليه اسمه تعالى واسم نبيه حال الاستنجاءالى اخره له دي ماسواډيرمستحبات علامه شامى په ردالمحتاركې ذكركړي دي من شاءفليراجع اليه(ردالمحتار:١/١٢٣)

## داوداسه دنواقضوبيان

(٢١)وَيَنقُضُهُ خُرُوجُ نَجِسٍ مِنهُ(٢٢)وَقَيءٌ مَلَأَ فَاهُ وَلَو مِرَّةً اَو عَلَقًا اَو طَعَامًا اَو مَاءً(٢٣)لَا بَلغَمًا(٢٤)اَو دَمًا غَلَبَ عَلَيهِ البُصَاقُ(٢٥)وَالسَّبَبُ يَجمَعُ مُتَفَرِّقَهُ

**ترجمه**:اواودس ماتوي دمرداري وتل له لمونځ كونكي څخه ،اوپه ډكه خوله قى كول اودس ماتوي كه څه هم زيړي اوبه يا ځنډه وينه وي ياخوراک وي يااوبه وي ،نه بلغم،ياداسي وينه چې پري ډيري وي نارې ،اوسبب جمع كوي متفرق قى لره.

**تشريح**:كله چې مصنف صاحب رحمه الله داوداسه له فرائضواوله دفرائضوله مكملاتوفارغ شونو دهغو امورويه بيان يې شروع وكړه چې هغه رافع اوماتونكي داوداسه دي ځكه چې دشى رفع كونكى او ماتونكى دشى له وجودڅخه وروسته وي،دنقض نسبت چې اجساموته وشي نومعنى يې دجسم تاليف اوتركيب باطلول دي اوكه دنقض نسبت معانيوته وشي نوپه دې وخت كې يې معنى داده چې معنى دمطلوب له فائده كولوڅخه باسي دلته اودس ځرنګه چې له معانيوڅخه ده نودنقض وضوء معنى داده چې اودس دمطلوب يعنى لمانځه لپاره اوس مفيدنه دى يعنى لمونځ نه صحيح كيږي .

(٢١)له نواقض وضوء (داوداسه له ماتونوكو شيانو) څخه يودادى چې دمتوضى له بدن څخه مرداري ووځي بيانوكه خارج من السبيلين وونوپه نفس راوتلويې اودس ماتيږي لقوله ﷺ ﴿لاينقض الوضوء الاماخرج من قبل اودبر﴾(يعنى اودس نه ماتوي مګر هغه څه چې له قبل يادبرڅخه ووځي)دماكلمه عامه ده معتاداوغيرمعتاد دواړوته شامله ده،اوكه خارج من غيرالسبيلين وو نوپه هغه كې شرط دادى چې صرف ظهوربه يې نه وي بلكه چې په بهيدلوسره دداسي ځاى لورته تجاوز وكړي چې په اوداسه ياغسل كې دهغه دپرمنځلوحكم شوى وي ځكه چې داودس ماتونكي هغه وينه ده چې وبهيږي ،اوله زخم څخه تجاوزنه كونكي وينه ځرنګه چې بهيدونكي وينه نه ده لهذاپه دې سره اودس نه ماتيږي .

ف: كه وينه دزخم پرسرښكاره شوه مګرونه بهيدله نواودس نه ماتيږي لماقلنا .دامام محمد رحمه الله په نزددزخم پرسرښكاره شوي وينه كه دزخم له مقدارڅخه زياته وه مګربهيدلي نه وه بياهم اودس ماتيږي ليكن اولني قول صحيح دى لمافي الهندية:الدم اذاعلاعلى راس الجرح لاينقض الوضوء وان اخذ اكثرمن راس الجرح والفتوى على انه لاينقض وصونه في جنس هذه المسائل (هنديه: ١/١٠)

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزدله غيرسبيلين څخه وتونكى شى اودس نه ماتوي ځكه چې له سبيلين څخه دنجاست دوتلوپه صورت كې دعضاء اربعه دپريمنځلوحكم امرتعبدي(يعني خلاف قياس) دى لهذاپردي باندي دخارج من غيرسبيلين قياس نشي كيدلاى،زموږدليل دنبي كريم ﷺ داارشاددى ،چې الوضوءمن كل دم سائل (اودس له هربهيدونكې ويني څخه دى ).

## په انجكشن (ستنه)سره داوداسه دماتيدلوبيان

ف:په وريدى انجكشن(يعني هغه ستن چې په رګ كې لګيږي )سره اودس ماتيږي ځكه چې درګ په ستنه كې اول دستني په سركې وينه ايستل كيږي اوترڅو چې په پچكاري كې وينه ښكاره نشي ترهغو پوري ستن نه لګول كيږي لهذاپه دي سره اودس ماتيږي ،پاتي شوه دغوښي اوپوستكى ستن نوپه هغي كې وينه نه ايستل كيږي ځكه نوپه هغي سره داوداسه ماتيدل ضروري نه دي مولاناخالد سيف الله رحماني صاحب مدظلهم ليكي له دباندي څخه دغذاءيادواء په صورت كې ديوشي ننوتل اودس نه ماتوي ،په ستن باندى دجسم څه وينه لګيږي په دومره اندازه دويني وتل هم اودس نه ماتوي ځكه چې هغه دومره لږوي چې بهيږي نه همدارنګه فقهاء وايي چې كه له جسم څخه وينه ووځي اوهغه پاكه كړاى شي اودهغي اندازه دومره كمه وي چې كه پاكه شوي نه واى نوهم به نه واى بهيدلي نوپه دي صورت كې اودس نه ماتيږي .......... ووكه ستنه دويني دكښلواوراكښولو لپاره وه نوپه هغي سره اودس ماتيږي .(جديدفقهى مسائل١/٩٧ ،اواحسن الفتاوى:٢/٢٣)

ف:كه چيرته داسي زخم وو چې له هغه څخه وينه راوتله اوپه جامه لګيدله نوكه په يوه مجلس كې په مختلفوواړونوسره په جامه لګيدلي وينه دومره وه چې كه جامي نه واى جذب كړي نوبهيدلي به واى نواودس ماتيږي كه نه نو نه ماتيږي اوكه په يومجلس كې خودومره وينه په جامه ونه لګيدله مګردمختلفومجالسو مجموعه دومره كيدله نوهغه ماتونكي نه ده قال علامه ابن عابدين الشامي:(قوله لومسح الدم كلماخرج الخ)وكذااذاوضع عليه قطنة وشيئاآخرحتى ينشف ثم وضعه ثانياوثالثافانه يجمع جميع ماانشف فان كان بحيث لوترك كسال نقض وانمايعرف هذابالاجتهادوغالب الظن وكذالوالقى عليه رماداوترابائم ظهرثانيافتربه ثم وثم فانه يجمع قالواوانمايجمع اذاكان في مجلس واحدمرة بعداخرى فلوفي مجالس فلاتاترخانيه (ردالمحتار: ١/١٠٠)

## په قى سره داودس دماتيدلوبيان

(٢٢)قوله وقي ملأفاه اى ينقضه قي ملأفاه ،يعني داوداسه له ماتونكوڅخه په ډكه خوله سره قى كول دي ځكه چې نبي كريم ﷺ فرمايلي دي چې له او و شيانوڅخه دي اودس بيرته وكړل شي په دي اوو

شيانوكې يوپه ډكه خوله قى كول دي ،بياقى په پنځه قسمه دى ،خالص پت وي ،خالص وينه وي ،خالص خوراک وي،خالص اوبه وي،خالص بلغم وي اولني څلورقسمه خوباتفاق ائمه ثلاثه داودس ماتونكي دي.

(۲۳)قوله لابلغماى لاينقضه اذاقاءبلغما،پنځم قسم قى داده چې خالص بلغم قى كړي نوكه بلغم نازل من الرأس(له سرڅخه راغلى )وو نوباتفاق ائمه ثلاثه ناقض وضوء نه دي ځكه چې سراودماغ دنجاست ځاى نه دى اوكه بلغم له نس څخه راوتلى وونودطرفينورحمهماالله تعالى په نزداودس نه ماتوي ځكه چې په بلغموكې لزوجت وي چې دهغه له كبله په دوئ كې نجاست نشي ننوتلاى اوله دوئ سره لګيدلى نجاست دلږوالى له امله ماتونكى نه دى ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزداودس ماتوي ځكه چې دمعدي دنجاست سره داتصال له امله بلغم هم نجس ګرځي.

ف:په ډكه خوله قى داده چې بغيرله سختى دده درول ممكن نه وي اوهمداصحيح ده لمافي الهندية:والحدالصحيح في ملءالفم ان لايمكنه امساكه الابتكلف ومشقة (هندية:۱/۱۱)ځيني وايي چې دومره اندازه قى چې له هغه سره خبري كول ممكن نه وي په ډكه خوله قى ګڼل كيږي.

(۲۴)قوله اودماغلب عطف على بلغماى ولاينقضه اذاقاءدماغلب الخ ،كه يې دومره وينه قى كړه چې ناړي پرې غالبي وي يعنى له وينوڅخه ناړي ډيري وي نودغالب په اعتباركولوسره په دي وينه اودس نه ماتيږي ځكه چې داپخپله بهيدونكي وينه نه ده بلكه دناړوله امله بهيږي هوكه چيرته ناړي مغلوبي وي اووينې غالبي وي نوپه دي سره اودس ماتيږي ځكه چې داسې وينه بهيدونكې وينه وي اوكه دواړه سره برابري وي نوپه دي صورت كې احتياطاداوداسه دماتوالى حكم كيږي.

ف:په وينه اوناړوكې ديوغلبه (ډيروالى) په رنګ سره معلوميږي كه يې رنګ سوروو نووينه ډيره ده اوكه زيړوو نوناړي ډيري دي لمافي الشامية :وعلامة كون الدم غالبااومساوياان يكون البزاق احمروعلامة كونه مغلوباان يكون اصفر(ردالمحتار:۱/۱۰۲)

(۲۵)كه يوڅاڅوځله قى وكړاوهرځل له ډكې خولې څخه كم وو مګركه داټول سره راجمع كړي نوډكې خولې اندازې ته رسيدونو ددې حكم دادى چې ټول قى به سره راجمع كړاى شي مګرپه يوشرط هغه شرط دامام ابويوسف رحمه الله په نزد اتحادمجلس دى نو دده په نزدبه هغه قى سره راجمع كيږي چې په يوه مجلس كې وي خواه كه دقى سبب يووي اوكه متعددځكه چې دمتفرقاتوپه جمع كولوكې مجلس ډيردخل لري لكه څرنګه چې دايت سجده په تلاوت كې دوحدة مجلس دخل دى،اودامام محمد رحمه الله په نزدهغه شرط وحدة سبب دى چنانچه دده په نزدهغه قى جمع كيږي دكوم چې سبب يووي خواه كه مجلس يووي اوكه نه وي ځكه چې حكم دسبب دثبوت مطابق كيږي لهذا دسبب په يووالى سره حكم متحدكيږي، والاصح قول محمد رحمه الله لماقال شارح التنوير:ويجمع متفرق القئ لاتحادالسبب وهو الغثيان عندمحمدوهوالاصح (الدرالمختارمع ردالمحتار:۱/۱۰۳)

ف:په واروارډلږلږقى كولوڅلورصورتونه دي په دووكې دصاحبينواتفاق دى اوپه دووكې اختلاف دى (۱)مجلس اوسبب قى دواړه متحدوي په دي صورت كې په اتفاق سره اودس ماتيږي (۲)دواړه مختلف وي يعنى نه مجلس متحدوي اونه دقى سبب يو وي په دي صورت كې بالاتفاق اودس نه ماتيږي (۳)مجلس يووي اوسبب مختلف وي په دي صورت كې اختلاف دى د امام ابو يوسف رحمه الله په نزد اودس ماتيږي

اوامام محمد رحمه الله په نزد اودس نه ماتیږي (۴) سبب یو وي او مجلس مختلف وي داصورت ددریم صورت عکس دی یعنی دامام محمد رحمه الله په نزد اودس ماتیږي اوامام ابویوسف رحمه الله په نزد اودس نه ماتیږي اومخکی بیان شوچې دامام محمد رحمه الله قول اصح دی.

(۲۶) وَنَوْمُ مُضْطَجِعٍ وَمُتَوَرِّكٍ (۲۷) وَإِغْمَاءٌ وَجُنُونٌ وَسُكْرٌ (۲۸) وَقَهْقَهَةُ مُصَلٍّ بَالِغٍ وَلَوْ عِنْدَ السَّلَامِ (۲۹) وَمُبَاشَرَةٌ فَاحِشَةٌ (۳۰) لَا خُرُوجُ دُودَةٍ مِنْ جُرْحٍ (۳۱) وَمَسُّ ذَكَرٍ (۳۲) وَامْرَأَةٍ

**ترجمه**:اوخوب اودس ماتوي دپروت والااوده په کوناتوتکیه کونکی والا،اوبي هوشي اولیونتوب اونشه ،اوپه زوره خندل دبالغ لمونځ کونکي (اودس ماتوي) که څه هم دسلام په وخت کې وي ، اومباشرت فاحشه ،نه وتل دچینجي له زخم څخه،اومخصوص اندام ته لاس وروړل اوښځې ته .

## په خوب سره داوداسه دماتیدلو بیان

**تشریح**:قوله ونوم مضطجع اى وينقضه ايضا نوم مضطجع الخ، مصنف رحمه الله دنواقض حکمیه بیان شروع کړځکه چې دخوب وغیره عین داوداسه ماتونکې نه دي بلکه هغه شیان ماتونکې دي له کوم څخه چې عادة خوب خالی نه وي ، نوداوداسه له ماتونکو څخه نوم (خوب) دی که په اړخ بیده وي اویایې یو کوناټی پرځمکه ایښی وي اودواړه پښې یې یوه طرف ته ایستلې وي یاپه تکیه لګولوسره اویایې کوم شي ته تکیه کړې اوویده وي په دې دول چې که هغه شی لرې کړای شي نودی به ولویږي په دې ټولوصورتونو کې اودس ماتیږي وجه یې داده چې دخوب له امله بندونه سستیږي کوم چې عادة دیوشی له وتلو څخه خالی نه وي اوکوم شی چې عادة ثابت وي دهغه شی ثبوت یقني کمل کیږي البته که دقیام یاقعود یاسجدې په حالت کې (خواه که په لمانځه کې وي یا له لمانځه څخه دباندې )ویده شونوپه داډول خوب اودس نه ماتوي ځکه چې په دې حالتونو کې څه ناڅه امساک پاتې وي کنه داشخص به خامخا لویدونومعلومه شوه چې په دي حالاتوکې کامل استرخاء(دبندونوسستي) نشته لهذااودس نه ماتیږي .

**ف**:حضرت مولانامفتی رشیداحمدصاحب نورالله مرقده دنوم قاعداودس لره دماتولودصورتونو تفصیل په عربی عباراتو له نقل کولووروسته داسې لیکلي دي ،نمبر۱:که یو شی ته له څنګ لګولوبغیر ویده شواوونه لوید ویاله لویدلوسره راپاڅیدونواودس نه ماتیږي . نمبر۲:په هیئت مسنون سره دسجدې په حالت کې خوب اودس نه ماتیږي که څه هم په لمانځه کې نه وي.نمبر۳:که چیرته ټوله مقعده پر ځمکه نه وي اوپه ټیک لګولوسره ویده شو خواه که په خپل ورون یابل شی باندې هم وي نواودس مات شولهذاپه دواړه زنګنوپه کښیناستلوسره په ورانه یابل شي دتکیه لګولوپه صورت کې اودس ماتیږي اوهمداشان که په چارزانوکښینستی اوپه ورانه یې ټیک ولګاوه اودومره ټیټ شوچې ټوله مقعده په ځمکه پاتې نه شوه نوهم اودس مات شو البته که ټوله مقعده پرځمکه پاتې شوه مثلازنګنونه یې ودرول اوپه لاسونویې ونیول یایې په جامه یابل شی له ملاسره وتړل اوپه زنګنویې سرکښیښود اوویده شوه اویاپه چارزانوکښینوست اوځنګلي یې په ورنو کښیښودي ویده شواو صرف دومره ټیټ شوچې ټوله مقعده یې پرځمکه پاتې وه

نو اودس نه ماتيږي. نمبر ۴: اوکه تو له مقعده پرڅمکه وه اوتيک يې ولګاوه اودومره په سخت خوب ويده شوچې دهغه شی په پورته کولوسره لويدلونوپه دي صورت کې اختلاف دی مفتی به داده چې نه ماتيږي.
(احسن الفتاوی: ۱/۲۳)

(۲۷) قوله واغماء وجنون ای ينقضه اغماء وجنون ،يعنی داوداسه له ماتونکوڅخه اغماء (بي هوشي)، ليونتوب اودنشي له امله مستيدل دي ځکه چې په اغماء کې ترخوب بندونودیرسستيږي لهذا اغماء په طريقه اولی سره اودس ماتوي، اوپه ليونتوب کې دپاکې اوناپاکې تميزنه پاتې کيږي لهذا ليونتوب په هرحال کې داودس ماتونکي ګڼل کيږي ،اوپه نشه کې مست ته هم دپاکې اوناپاکې تميزنه پاته کيږي ځکه نوداهم اودس ماتوي.

ف: دنشي اندازه دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدداده چې کوم شخص دنراوښځي ترمنځ تميزونه کړای شي هغه سکران دی، اودصاحبينوپه نزدسکران هغه ده چې دهغه په خبروکې ګډوډي اوهذيان (بي ځايه خبري )راشي دصاحبينوقول صحيح اومفتی به دی لمافی الشامية: (قوله وسکر) واختلف فی حده فقال الامام انه سرور يزيل العقل فلايعرف به السماء من الارض الخ وقالا بل يغلب عليه فيهزی فی اکثر کلامه ولاشک انه اذاوصل الی هذه الحالة فقد دخل فی مشيه اختلال الخ وقد رجحوا قولهما فی الابواب الثلاثة قال فی حدود الفتح واکثر المشائخ علی قولهما واختاروه للفتوی وفی نواقض المجتبی الصحيح قولهما ای فلايشترط فی حده ان يصل الی ان يعرف الارض من السماء (ردالمحتار:۱/۱۰۶)

ف: اغماء دزړه يادماغ يوناروغي ده له کومې څخه چې انساني قوی معطل کيږي کارنه کوي اوعقل مغلوبيږي مګرختميږي نه، اوجنون داسي ناروغي ده چې په هغي کې عقل سلبيږي مګرقوی نه سلبيږي لمافی الشامية :(قوله وينقضه اغماء) هوکمافی التحرير آفة فی القلب اوالدماغ تعطل القوی المدرکة والمحرکة عن افعالها مع بقاء العقل مغلوبا........(قوله والجنون) صاحبه مسلوب العقل بخلاف الاغماء فانه مغلوب (ردالمحتار:۱/۱۰۶)

## دقهقهې بيان

(۲۸) قوله وقهقهة مصل ای ينقض الوضوء القهقهة الخ، داوداسه له ماتونکوڅخه دلمانځه په حال کې دلمونځ کونکي په زوره خندل دي که څه هم دسلام ګرځولوپه وخت کې وخاندي، مګرشرط داده چې لمونځ به دركوع اوسجدي والايې دجنازي لمونځ به نه وي لقوله ﷺ «الامن ضحک منکم قهقهة فليعدالوضوء والصلوة جميعا» (په يوه موقع باندي ځينوصحابه کرامو ﷺ ديوشي له امله په لمانځه کې وخندل نونبی کريم ﷺ وفرمايل خبردار! چاچې له تاسي څخه په زوره وخندل نوهغه دي داوداسه اولمانځه دواړواعاده وکړي) ځرنګه چې دسلام په وخت کې هم دلمانځه حرمت باقی دی اوروايت مطلق دی نولهذا دسلام ګرځولوپه وخت کې هم په زوره خندل اودس ماتوي.

ف: دقياس تقاضاداده چې بايدپه قهقه سره اودس مات نشي ځکه چې په قهقه سره کوم نجس شی نه خارجيږي په دي وجه نورائمه کرام په قهقه سره داوداسه دماتيدلوقائل نه دي مګراحنافودپورته ذکرشوي حديث له امله قياس پريښی دی.

ف: له تهقي څخه دبالغ اوويش قهقه(په زوره خندل) مراددي نوكه نابالغ اوويده په زوره وخندل دهغه اودس نه ماتيږي ځکه چې په قهقه زجراًاوعقوبةً داودس ماتونكي ده جبكه نابالغ اوويده دعقوبة اهل نه دي البتة قهقه ځرنګه چې دخبروله قبيلي څخه ده په دي وجه ددوئ لمونځ په قهقه سره فاسديږي.

ف: قهقه داسي خنداته ويل كيږي چې انسان يې خپله هم واوري اودڅنګ والايې هم واوري خواه كه غاښونه ښكاره شي اوكه نه. قهقه دلمانځه اواوداسه دواړولپاره ماتونكي ده ،ضحک داسي خنداته ويل كيږي چې انسان خويې پخپله واوري مګرڅنګ والايې نه واوري ضحک مبطل صلوة(دلمانځه باطلونكي)دى مګراودس نه پري ماتيږي،اوتبسم داسي خنداته ويل كيږي چې نه يې انسان په خپله واوري اونه يې دڅنګ والاواوري تبسم نه مبطل صلوة دى اونه داوداسه ماتونكى دى.

(۲۹)قوله ومباشرة فاحشة اى وينقض الوضوء مباشرة فاحشة ،يعنى د اوداسه له ماتونكو څخه يو مباشرة فاحشة دى يعنى د نر او ښځي د شرمګاه يو ځاى كيدل بي له كومي پردي اودس ماتوي ، د امام محمد رحمه الله په نزددمذي له وتلوبغيرمباشرت اودس نه ماتوي دقياس تقاضاهم همداده ځكه چې سبب د مسبب پرځاى هلته دريږي چيرته چې په مسبب باندي بلاحرجه خبريدل ممكن نه وي حال دا چې دلته په حقيقت حال خبريدل ممكن اواسانه دي ،دظاهرالرواية دليل دادى چې مباشرة فاحشة غالبا دمذى له وتلوڅخه خالى نه وي والغالب كالمتحقق،اوپه عباداتوكې احتياطاسبب دمسبب پرځاى درول كيږي ځكه نومباشرة فاحشة اودس ماتوي.

(۳۰)قوله لاخروج دودة اى لاينقضه خروج دودة ،له زخم څخه دچينجي په وتلوسره اودس نه ماتيږي ځكه چې چينجى پخپله نجس نه دى په دي وجه چې چينجى له غوښي پيداكيږي اوخپله دغوښي لويدل اودس نه ماتوي نوله دي څخه دپيداشوي شى په راوتلوسره هم اودس نه ماتيږي هوهغه وينه يانونه بي شكه نجس دي كوم چې په چينجى موښتي وي مګرځرنګه چې هغه ډيرلږدى اولږنجاست (په دي شرط چې له سبيلينوڅخه نه وي راوتلى) اودس نه ماتوي. لمافى الهندية:الدودة الخارجة عن راس الجرح لاتنقض الوضوء (هندية: ۱/۱۱)

ف: مصنف صاحب رحمه الله دمن جرح قيدولګاوه چې له زخم څخه راوتلى چينجى داوداسه ماتونكى نه دى په دي سره احترازوشوله هغه چينجى څخه چې له احدالسبيلين څخه راووځي ولي چې دداسي چينجى وتل اودس ماتوي ځكه چې خارج من السبيلين مطلقااودس ماتوي لمافى اللباب :(والمعاني الناقضة للوضوء كل ما)اى شئ(خرج من السبيلين)اى مسلكي البول والغائط اعم من ان يكون معتادااو لاانجسااو لا(اللباب على هامش الجوهرة: ۱/۲)

(۳۱)قوله ومس ذكر اى لاينقضه مس ذكر ،يعنى په مخصوص اندام لاس وهل اودس نه ماتوي . دامام شافعى رحمه الله په نزدمس ذكراودس ماتوي﴿لحديث بسرة من مس ذكره فليتوضا ﴾ (څوک چې ذكرمس كړي هغه دي اودس وكړي) ،زموږدليل دحضرت على بن طلق رضي الله عنه حديث دى چې ديوچاپه پوښتنه كولوسره نبى كريم ﷺ وفرمايل هل هو إلا مضغة منک (چې هغه خوستادجسم يوټكړه ده) نولكه ځرنګه چې په نوربدن په لاس وهلوسره اودس نه ماتيږي همداشان په مس ذكرسره هم اودس نه ماتيږي اوكوم چې دبسرة رضي الله عنها حديث دي نودهغه په باره كې يحى بن معين رحمه الله وايي ،ثلاثة احاديث لم تصح عن رسول الله ﷺ حديث مس الذكرولانكاح الابولى وكل مسكرحرام لهذا دبسره رضي الله عنها حديث داستدلال وړ نه دى.

(۳۲)قوله وامرأة بالجر عطف ذكر اي مس بشرة المرأة لاينقض الوضوء .يعني ښځي ته لاس وروړل هم اودس نه ماتوي خواه كه په شهوت سره وي اوكه بي له شهوته وي،دامام شافعي رحمه الله په نزدمس امرأة اودس ماتوي لقوله تعالى ﴿ اولامستم النساء ﴾ (ياتاسي خپلي ښځي مس كړي وي ) اومس حقيقة په لاس سره وي لهذا په لاس سره مس كول اودس ماتوي .زموږدليل داده چې حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه څوك چې ترجمان القرآن دى دلامستم تفسيرپه جماع سره كړى دى چې لامستم په معنى دجماع دى په دي وخت كې دايت مبارك ترجمه داده ياتاسي له خپلوښځوسره نزديكت كړى وي. اوهمداشان منقول دي چې نبى كريم ﷺ دخپلوښځوڅخه مچه اخيسته اوبيابه لمانځه ته تللواواودس به يې نه كاوه.

## دغسل دفرائضوبيان

(۳۳)وَفَرْضُ الْغُسْلِ غَسْلُ فَمِهِ وَأَنْفِهِ وَبَدَنِهِ (۳۴) لَا دَلْكُهُ (۳۵) وَإِدْخَالُ الْمَاءِ دَاخِلَ الْجِلْدَةِ لِلْأَقْلَفِ

**ترجمه**:اودغسل فرض پريمنځل دي دخولي ،پوزي اوټول بدن .نه د بدن مښل.اوتنه ايستل داوبودناسنته زيات پوستكى ته

**تشريح**:په غسل كې دري شيان فرض دي ،خوله پريمنځل .په پوزه كې اوبه اچول اوپه ټول بدن اوبه تويول لقوله تعالى﴿وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا ﴾(يعنى كه تاسي په حال دجنابت كې ياست نوبنه پاكي حاصله كړئ )الله تعالى مكلفينوته على سبيل المبالغة دټول بدن دپريمنځلوحكم كړى دى البتة كه كوم خاى ته داوبورسول متعذروو نوهغه له دي حكم څخه وتلى دى لكه دستركودننه حصه څكه چې دستركوددننه طرف په پريمنځلوكې ضررد‌ى همداوجه ده چې كه چاپه مرداروړانجوستركې توزي كړي نوهغه ته دستركو دپريمنځلوحكم نه وركول كيږي په خوله اوبه رغړول اوپه پوزه كې اوبه اچول څرنگه چې متعذرنه دي لهذاپه جنابت كې ددوي پريمنځل دكتاب الله په حكم سره فرض دي

**ف**:په اصل كې دغسل ركن يودى اوهغه دادى چې دمغتسل (غسل كونكى ) دبدن كومي كومي حصي ته چې بلاحرج اوبه رسول ممكن وي په هغه باندي يوځل اوبه تويول دي نوپه دي كې خوله پريمنځل اوپوزه پريمنځل هم داخل دي څكه چې خولي اوپوزي ته اوبه رسول ممكن دي مگرڅرنگه چې دخولي اوپوزي دپريمنځلوپه فرضيت كې دامام شافعي رحمه الله اختلاف دى څكه مصنف صاحب رحمه الله جلاپه دوئ دواړوتصريح وكړه.

## دمصنوعي غابن حكم

**ف**:كه غابښونه چينجووهل اوكوم بل علاج يې نه وو اوداكتروويل چې په سپينوزوروبه يې دوكوي نوپه دي صورت كې په اوداسه كې كوم نقص نه راځي هوپه غسل كې اشكال كيداى شي څكه چې په غسل كې دخولي پريمنځل فرض دي ليكن فقهاوتصريح كړي ده چې دضرورت په ځايونو كې تركېته اوبه رسول ضروري نه دي .(فتاوى عثمانى:۱/۳۱۳ )

ف: مصنوعي غاښونه په دوه قسمه دي يو هغه چې په مستقله طريقه سره لګول شوي وي او بيا په اساني سره نه راايستل کيږي، او دوهم هغه دي چې دهغو جوړښت په دې ډول وي چې دضرورت په وخت کې استعمال کړای شي او که يې ايستلو ته ضرورت وو وايستل شي په اولني صورت کې دامصنوعي غاښ داصلي غاښ په درجه کې دی څکه نو دده حکم هم داصلي غاښونه دی په اوداسه کې دي غاښونوته اوبه رسول سنت دي اوپه غسل کې دغاښونوايستلواوبيخ ته داوبو رسولو ضرورت نشته، همداوجه ده چې فقهاوو داسې غاښونوايښودلو يادسرواوسپينوزروپه تارونه دتړلواجازت ورکړی دی، ښکاره ده چې ددې اجازې مطلب همدادی چې ددوئ دننه حصې ته اوبه رسول ضروري نه دي که نه دااجازه به ډيره پريشانونکي هم وای اوبې معنی هم، حال داچې په دوم صورت کې دده حيثيت ديوه اضافه شی دی يعني غسل به هغه وخت صحيح کيږي کله چې دی وايستل شي اواصل جسم ته اوبه ورسيږي که چيرته داسې ونه شي نوغسل نه صحيح کيږي. (جديد فقهي مسائل: ۱/۹۴)

ف: مروجه سرخي، کريم وغيره دتيلوپه څير دي اوپودر دګرځ په څير دي دکوم له امله چې په اندامونوخور نه جوړيږي په دې وجه ددوئ له وجودسره هم اودس صحيح دی مګرداودس کولوپه وخت کې بايد اول دوئ لانده شي اوبيا پريمنځل شي البته که سرخي ياکويم داسې ووچې له هغوئ څخه دنوکانودرنګ په شان خورجوړيدله نوبيا اودس او غسل جائزنه دي. (حقانيه: ۲/۵۱۱)

(۳۴) قوله لادلکه ای لايفترض دلک بدنه، يعني په غسل کې دبدن مښل فرض نه دي دامام مالک رحمه الله په نزد په غسل کې دبدن مښل فرض دي هغه يې دجامې په پريمنځلو قياسوي زموږ دليل دادی چې دالله تعالی په ارشاد فاطهروا کې دمطلق طهارت حکم شوی دی په دې په اضافه کولوسره دبدن دمښلو شرط په لګولوسره په مطلق زيادت لازميږي او په جامه قياس کول په دې وجه صحيح نه دي چې نجاست خوپه جامه کې دننه داخليږي مګرپه جسم کې نه داخليږي.

(۳۵) قوله وادخال الماء عطف علی قوله لادلکه ای لايفترض ايضاادخال الماء داخل الجلد، يعني که څوک سنت شوی نه وي نودځينو علماوپه نزد په هغه باندې خپل دې زيات پوستکی ته اوبه رسول فرض دي ددوئ په نزد داپه هرډول سره دظاهربدن په حکم کې دی لهذاددوئ په نزد په غسل کې ترده اوبه رسول واجب دي اوکه دبولوڅاڅکی ترده راورسيدواودباندې راونه وتی نوهم اودس ماتيږي، او دځينونوروپه نزددهغه پوستکی ته اوبه رسول فرض نه دي ددوئ په نزدپه غسل کې دهغه پوستکي حکم دباطن بدن دی څکه چې په غسل کې په اوبورسولوکې حرج دی نيزداخلقة دشرمګاه دسوری په څير دی لهذادشرمګاه دسوری په څير دلته هم اوبه رسول ضروری نه دي، هوپه اوداسه کې دده حکم دظاهربدن دی لهذاکه ده ته دبولوڅاڅکی راورسيدونواحتياطااودس ماتيږي اوهمدا قول صحيح دی لمافی الدرالمختار (لا) يجب (غسل مافيه حرج کعين)..........(وثقب انضم و) لا (داخل قلفة) بل يندب هو الاصح قاله الکمال وعلله بالحرج. وقال ابن عابدين: وهذالانه اذاوصل البول الی القلفة ينقض الوضوء فجعلوه کالخارج فی هذاالحکم وفی الغسل کالداخل (الدرالمختار مع ردالمحتار: ۱/۱۱۳)

## دغسل دسنتونو بيان

(۳٦) وَسُنَّتُهُ أَنْ يَغْسِلَ يَدَيْهِ وَفَرْجَهُ وَنَجَاسَةً لَوْ كَانَتْ عَلَى بَدَنِهِ (۳۷) ثُمَّ يَتَوَضَّأَ (۳۸) ثُمَّ يُفِيضَ الْمَاءَ عَلَى بَدَنِهِ ثَلَاثًا (۳۹) وَلَا تَنْقُضُ ضَفِيرَةً إِنْ بَلَّ أَصْلَهَا

**ترجمه**: اودغسل سنتونه دادي چې پريمنځي خپل دواړه لاسونه اوشرمګاه اومرداري كه لګيدلي وه دده پربدن، بيادي اودس وكړي، بيادي توی كړي اوبه پرخپل بدن دري ځله، اوښځه دي خپله كوڅۍ نه خلاصوي كه دويښتاو بيخونه لانده شول،

**تشريح**: (۳٦) دغسل مسنونه طريقه داده چې ترټولومخكې دواړه لاسونه ترمرونډوپوري وپريمنځي ځكه چې دواړه د پاكولو آله ده بياخپله شرمګاه پريمينځه ځكه چې هغه دنجاست ځای دی نواحتمال شته چې مرادري دي پري نښتی وي له كومې څخه چې دنوربدن دخرابيدلواندېښنه شته اوكه دبدن په نوروحصوباندي مرداري لګيدلې وي نوهغه هم لري كړه ترڅوداوبوپه توييولوسره مرداري خپره نشي.

(۳۷) بيا اودس وكړه لكه څرنګه چې دلمانځه لپاره اودس كوي مګركه په داسې ځاي كې غسل كوي چيرته چې دغسل اوبه جمع كيږي نوپه اوداسه كې پښې مه پريمينځه بلكه له غسل كولوڅخه وروسته پښې پريمنځه ځكه چې په داسې صورت كې په اوداسه كې دپښو دپريمنځلو څه ګټه نشته.

(۳۸) بيا په خپل سراوټول بدن باندي اوبه توی كړه بياكه دي په اوداسه كې پښې نه وي پريمنځلي نوله دغه ځای څخه لري شه اوپښې پريمنځه ﴿ هكذا حكت ميمونة ﷺ روى الجماعة عنها قالت وضعت للنبي ﷺ ماء يغتسل به فافرغ على يديه فغسلهما مرتين او ثلاثا ثم افرغ بيمينه على شماله فغسل مذاكيره ثم دلك يده بالارض ثم تمضمض واستنشق ثم غسل وجهه ويديه ثم غسل رأسه ثلاثا ثم افرغ على جسده ثم تنحى عن مقامه فغسل قدميه ﴾

**ف**: په ټول بدن داوبوتوييول بايدله كوم اندام څخه شروع كړای شي ؟په دي كې دوه قوله دي نمبر۱. له ښې اوږي څخه دي پيل كړي بيادي په چپه اوږه اوبه توی كړي بيادي پرسراوبه توی كړي /نمبر۲. اول دي پرسراوبه توی كړي بياپرراسته اوږه بياپرچپه اوږه همدا ظاهرالرواية اوصحيح قول دی لمافي شرح التنوير: (ثم يفيض الماء بادئا بمنكبه الايمن ثم الايسر ثم برأسه ثم) على (بقية بدنه مع دلكه) ثلاثا وقيل يثني بالراس وقيل يبدأ بالراس وهو الاصح وظاهر الرواية (الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ۱/۱۱۷)

(۳۹) كه دښځي دسردويشتانوبيخونه اوبه ورسيږي نوپردي باندي دخپلوضفائرو(كوڅيو) خلاصول واجب نه دي ځكه چې حضرت ام سلمة ﷺ فرمايي چې ماعرض وكړچې يارسول الله زه داسې ښځه يم چې دخپل سرويښتان چوټي كوم نوايا په غسل جنابت كې يې خلاصي كړم نونبی كريم ﷺ وفرمايل چې يابلكه ستالپاره داكافي ده چې په خپل سردري لپې اوبه توی كړي بياپه خپل ځان اوبه توی كړي نوبس ته به پاكه شي، البته شرط داده چې اوبه دويښتانو بيخوته ورسيږي كه نه نو دويښتانو خلاصول واجب دي.

**ف**: دښځي په خاصولوسره مصنف رحمه الله دي خبري ته اشاره وكړه چې كه سړی دسر ويښتان كوڅۍ كړي وو نودغسل په وخت كې دكوڅيوخلاصول واجب دي لعدم الضرورة في حقه ،همدا شان كه دښځي ويښتان خلاص وو نوبياصرف بيخوته داوبورسول كافي نه دي بلكه دټولو ويښتانوپريمنځل اولندول ضروري دي

ولی چې په دې صورت کې ښځې ته ویښتانو ته په اوبو رسولو کې څه تکلیف نشته، لمافي شرح التنویر (وکفی بل اصل ضفیرتها) ای شعر المرأة المضفور للحرج اما المنقوض فیفرض غسل کله اتفاقا (الدر المختار علی هامش رد المحتار: ۱/۱۱۳)

## د غسل د موجباتو بیان

(۴۰) وفرض عند مني ذي دفق وشهوة عند انفصاله (۴۱) وتواري حشفة في قبل أو دبر عليهما (۴۳) وحيض (۴۴) ونفاس (۴۵) لا مذي (۴۶) وودي (۴۷) واحتلام بلا بلل

**ترجمه**: او غسل فرض دی د داسې منیو د وتلو په وخت کې چې توپ وهونکې وي او شهوت لرونکې وي له خپل ځای څخه د جلا والي په وخت کې. او د مخصوص اندام د سر د پټیدلو په وخت کې په قبل یا دبر کې پردواړو باندې. او له حیض. او نفاس څخه (غسل فرض دی) نه د مذی او ودي له وتلو څخه. او له احتلام څخه بغیر له لوند والي.

**تشریح**: دلته مصنف رحمه الله موجبات غسل (د غسل لازمونکې اسباب) بیانوي له موجب څخه مراد هغه شی دی د کوم له امله چې غسل فرض ګرځي.

(۴۰) د غسل لازمونکې سببونه ډیر دي. اول سبب یې په شهوت سره په توپ د منیو له خپل مقر (ځایه) څخه جلا کیدل دي خواه که د سړي وي او که د ښځې وي که د خوب په حالت کې وي او که د ویښې په حالت کې وي ولې چې د الله تعالی ارشاد دی ﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ د استدلال وجه داده چې په ایت شریف کې د تطهیر حکم جنبي ته شامل دی او په لغت کې جنابت په شهوت سره د مني وتلو ته ویل کیږي. لهذا په شهوت سره د مني وتل جنابت دی نو غسل به هم په شهوت سره د مني په وتلو واجبیږي.

**ف**: د امام شافعي رحمه الله په نزد د مني وتل مطلقا غسل واجبوي خواه که شهوت وي او که نه وي. د دهٔ دلیل د نبي کریم ﷺ دا ارشاد دی چې الماء من الماء (اوبه له اوبو څخه لازمیږي) یعنی غسل له منی څخه واجبیږي. د احدیث مطلق دی په دې کې د شهوت قید نشته لهذا د مني وتل مطلقا غسل واجبوي. امام شافعي رحمه الله ته خواب ورکړل شوی دی چې ستاسو مستدل الماء من الماء پر خپل عموم پاتې نه دی کنه مذی او ودي او بولي به هم په دې کې داخلې شي او حال دا چې له دوئ څخه د غسل په واجبیدلو هیڅوک قائل نه دی بلکه خاص او به یعنی په شهوت سره د مني وتل مراد دي

**ف**: بیا له احنافو څخه د طرفینو (امام ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله) په نزد له عضو تناسل څخه د منیو د وتلو په وخت کې شهوت شرط نه دی د امام ابو یوسف رحمه الله په نزد په دې وخت کې هم شهوت شرط دی. لهذا که د چا احتلام وشو او مني له خپل ځای څخه په شهوت سره جلا شول مګر ده خپل عضو تناسل ټینګ کړ کله چې شهوت ختم شو نو مني بې له شهوته ووتل نو په دې صورت کې د طرفینو په نزد غسل واجب دی او د امام ابو یوسف رحمه الله په نزد غسل واجب نه دی د طرفینو قول راجح دی مګر د سفر وغیره په شان د ضرورت په ځایونو کې د امام ابو یوسف رحمه الله په قول د عمل کولو ګنجائش شته لمافي الشامية (قوله قلت) ظاهره الميل الی اختیار مافی النوازل ولکن اکثر الکتب علی خلافه حتی البحر والنهر ولاسیما قد ذکروا ان قوله قیاس وقولهما استحسان وانه الاحوط فینبغي الافتاء بقوله فی مواضع الضرورة فقط تامل (رد المحتار: ۱/۱۱۹)

ف: اوكه كوم شخص دخپل عضوتناسل په نيولو قدرت پيدانه كړتردي چې مني ووتل نوباتفاق ائمه داشخص جنب شواوس نوكه له تهمته ويريده نودلمونځ كونكي شبه دي اختياركړي مثلالاس دي پورته كړي اودلمونځ كونكوپه څيردي ركوع اوسجده وكړي بي له نيت كولواوبي له تكبيرتحريمه اوقرأت څخه .لمافي الشامية :اذالم يتدارك مسك ذكره حتى نزل المني صارجنبابالاتفاق فاذاخشي الريبة يتستربايهام انه يصلي بغيرقرأة ونية وتحريمة فيرفع يديه ويقوم ويركع الخ المصلي(ردالمحتار: ۱/۱۱۹)

(۴۱)قوله وتواري حشفة اي وفرض الغسل ايضاعندتواري حشفة .په ښتولوكې چې دعضوتناسل دپوستكي كومه برخه پرې كيږي له هغه څخه پورتنۍ حصي ته حشفه ويل كيږي كوم ته چې په اردو كې سپاري ويل كيږي .له موجبات غسل څخه دسري دحشفي په قبل كې پټيدل دي صرف نښلول غسل نه واجبوي بلكه دحشفي پټيدل غسل واجبوي خواه كه انزال وي اوكه نه وي ولې چې په كوم شي چې حكم مرتب وي هغه كه پخپله خفي وي مګردهغه يوښكاره سبب وي نودانښكاره سبب دهغه خفي امرپرځاى دريږي اوحكم په دغه سبب مرتب كيږي نودلته دحشفي پټيدل دانزال سبب دى اوخپله انزل له سترګوڅخه پټ دى كله دمني دكښت له كبله محسوسيږي لاهم نه چې انزال وشواوكه نه وشوپه دې وجه دحشفي پټيدل دانزال پرځاى دريږي اودغسل ترتب دحشفي پرپټيدلودى .همداشان دسري دحشفي پټيدل په دبركې په فاعل اومفعول دواړوغسل واجبوي ولې چې په دې صورت كې هم دمني وتل غالب دي اوپه مفعول باندې احتياطاغسل واجب دى لمافي الهندية:الايلاج في احدالسبيلين اذاتوارت الحشفة يوجب الغسل على الفاعل والمفعول به انزل اولم ينزل (هندية: ۱/۱۰)

(۴۲)قوله وحيض ونفاس اي وفرض الغسل ايضاعندانقطاع حيض وانقطاع نفاس ،دغسل دواجبولودريم سبب حيض دى په دشرط چې ختم شي لقوله تعالى ﴿ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّى يَطْهُرْنَ فاذاتطهرن فاتوهن من حيث امركم الله ﴾ (يعني حائضوښځوته مه ورنږدې كيږي ترڅوچې دوئ پاكي شي نوكله چې دوئ ښې پاكي شي نوپه هغه ځاى كې جماع كوى په كوم ځاى كې چې الله امركړى دى)اوښه پاكوالى هغه وخت كيږي كله چې دويني له بنديدووروسته غسل وكړي

(۴۳)دغسل دواجبولوڅلورم سبب نفاس دى په دشرط چې ختم شي اودنفاس غسل لره واجبول په اجماع ثابت دى.

(۴۴)قوله ولامذي وودي اي لايفرض عندخروج مذي وودي ،مذي(نرمي سپيني اوبه دي كومې چې له ښځې سره دبازۍ كولوپه وخت كې دسړي له ذكرڅخه وځي )

(۴۵)اوودي(زيږي خنډي اوبه دي كومې چې كله له بولو څخه مخكې اوكله له بولوڅخه وروسته راوځي) دوتلوپه صورت كې غسل نه واجبيږي البتة اودس واجبيږي لقوله ﷺ ﴿كل فحل يمذى وفيه الوضوء﴾ (چې دهرنرڅخه مذي وځي اوپه هغوئ كې اودس دى) .اوودي په بولوقياس دي.

(۴۵)قوله واحتلام بلابلل اي لايجب الغسل بالاحتلام بلابلل .يعني دمذي اوودي په شان احتلام بي له لوندوالي هم غسل نه واجبوي مثلاچاپه خوب كې خپل ځان په جماع كولواوليدو بيا له پاڅيدو وروسته په جامه يا بدن باندې لوندوالى ونه ليدونوپه دې شخص غسل فرض نه دى كه ښځه وي اوكه نر وي ،لحديث ام سلمة ﷺ قالت جاءت ام سليم ﷺ امرأة ابي طلحة ﷺ الى النبي ﷺ فقالت يا رسول الله ان الله لايستحيي من الحق فهل على المرأة من غسل

اذاهي احتلمت قال نعم اذارأت الماء ، (حضرت ام سلیم ﷺ نبی کریم ﷺ ته راغله اوویې ویل یارسول الله ﷺ الله ﷻ په حق نه شرمیږي نو ایاپه ښځه غسل شته کله چې ددې احتلام وشي نبی کریم ﷺ وفرمایل هوپه داسې حال کې چې اوبه ووینې).

## داحتلام بلابلل څوارلس صورتونه

**ف**:احنافوددې مسئلې څوارلس صورتونه ذکرکړي دي (۱)تیقن منی (۲)تیقن مذی(۳)تیقن ودی،دادرې صورتونه دیقین دي او څلورصورتونه دشک اوعدم یقین دي (۱)په اولنیودوویعنی منی اوودي کې شک وي (۲)په اخیرنیودوو یعنی مذی اوودي کې شک وي (۳)په اول اودریم یعنی منی اوودي کې شک وي (۴)په دریوسرو کې شک وي چې کیدای شي منی دوي کیدای شي مذی دي وي اوکیدای شي ودي دي وي دااوه صورتونه شول په دوئ کې دهریوه دوه دوه صورتونه دي تذکراحتلام یعنی چې دده احتلام په یادوي اوعدم تذکراحتلام یعنی چې دده احتلام په یادنه وي لهذاټول څوارلس صورتونه شول .اوس ددوئ حکم واوره ، دتذکراحتلام په اووصورتونو کې له یوه ماسواپه نوروټولو صورتونو کې غسل واجب دی اوهغه یوصورت دتیقن ودی دی په دي کې امام صاحب اوصاحبین متفق دي ،اودعدم تذکراحتلام په صورتونو کې داتفصیل دی چې په یوه صورت یعنی دتیقن منی په صورت کې بالاتفاق غسل واجب دی اودتیقن غیرمنی په صورتونو کې بالاتفاق غسل واجب نه دی اوهغه درې صورتونه دي (۱)تیقن مذی (۲)تیقن ودی(۳)شک بین المذی والودی ،اوپه احتمال منی(دکوم چې درې صورتونه دي)دطرفینوپه نزدغسل واجب دی اودامام ابویوسف رحمه الله په نزدغسل واجب نه دی اوهغه درې صورتونه دتادي (۱)شک بین الاولین(۲)شک بین الاول والثالث (۳)شک فی الثلاث. حاصل داچې دعدم تذکراحتلام په ۷صورتونو کې دامام ابویوسف رحمه الله په نزدصرف په یوصورت یعنی تیقن منی کې غسل واجب دی په پاتي شپږوصورتونو کې غسل واجب نه دی او دطرفینوپه نزددتیقن منی په صورت اواحتمال منی په دریوصورتونو کې غسل واجب دی.

## دغسل مسنون بیان

(۴۷)وَسُنَّ لِلْجُمُعَةِ(۴۸)وَالْعِيدَيْنِ(۴۹)وَالْإِحْرَامِ(۵۰)وَعَرَفَةَ

**ترجمة**:اوغسل سنت دی دجمعې لپاره ،اودأخترونولپاره ،اودأحرام لپاره ،اوپرعرفات ددریدلولپاره.

**تشریح**:له دې ځای څخه مصنف رحمه الله دغسل مسنون بیان کوي نویې وفرمایل (۴۷)چې دأحنافوپه نزددجمعې لپاره غسل کول مسنون دی لقوله ﷺ ﴿من توضأ للجمعة فبها ونعمت ومن اغتسل فذلک أفضل﴾(یعنی چاچې دجمعې په ورځ اودس وکړنوفبهااوچاچې غسل وکړنودا افضل دی)اوهمدارنګه دحضرت ابن عباس ﷺ له یوه اوږده حدیث څخه هم دجمعې دغسل مسنون والی ثابتیږي کوم چې حضرت عکرمه نقل کوي چې دعراق له خلکو څخه څه خلک راغلل اوپوښتنه یې وکړه چې ای ابن عباس ایاستاپه رأیه دجمعې په ورځ

غسل كول واجب دي ؟ابن عباس ﷺ وويل يابلكه غسل دزياتي پاكۍ باعث دی اودغسل كونكي لپاره بنه دی اوكه چاغسل ونه كړنوپه هغه واجب نه دی.

ف:دجمعي غسل دامام ابويوسف رحمه الله په نزددجمعي دلمانځه لپاره سنت دی يعنی غسل كونكی كه په همدي غسل سره دجمعي لمونځ اداء كړي نوده ته به دسنت غسل ثواب وركول كيږي كه نه نو نه وركول كيږي ،اوحسن ابن زياد رحمه الله په نزددجمعي دورځي لپاره سنت دی ،دامام ابويوسف صاحب رحمه الله قول صحيح دی لمافی الهندية:وغسل يوم الجمعة للصلوة وهو الصحيح كذافی الهداية(هندية:٦ ١/١)

ف:دجمعي ،اخترونو،احرام اووقوف عرفات لپاره غسل سنت غيرمؤكددی يعنی پريښودنكی يې دملامتيامستحق نه ګرځي لمافي حاشية الشيخ عبدالحكيم الشاوليكوتي الشهيد:واعلم ان هذالغسل من السنن الغير المؤكدة فلايعاب بتركه كمافي القهستاني وذهب بعض المشائخ الى ان هذه الاغتسالات الاربعة مستحبة الخ (ماخوذازدرالمحتار:١٢٥/١)

(٤٨)قوله والعيدين اى وسن الغسل للعيدين ،يعنی داخترونوپه ورځ غسل كول سنت دي ﴿لحديث فاكهة بن سعدان رسول الله ﷺ كان يغتسل يوم عرفة ويوم النحر ويوم الفطر﴾ (يعنی نبی كريم ﷺ دكوچني اخترپه ورځ اودلوی اخترپه ورځ اودعرفي په ورځ غسل كاوه) نيزپه دي ورځوهم دجمعي په څيرددېروخلكواجتماع وي نوپه دي وجه په دي ورځوكې هم غسل مسنون دي.

(٤٩)قوله والاحرام اى وسن الغسل للاحرام ،يعنی داحرام لپاره هم غسل سنت دی خواه كه دحج احرام وي اوكه دعمري احرام وي لحديث خارجة بن زيدبن ثابت ﷺ انه رأى النبي ﷺ تجرد لاهلاله (احرامه) واغتسل (چې نبی كريم ﷺ جلاشو اوداحرام لپاره يې غسل وكړ).

(٥٠)دعرفات لپاره غسل كول سنت دی لماروينامن حديث فاكهة بن سعد ﷺ ،دعرفات غسل خاص په عرفات ددريدلولپاره دی دعرفات ددخول ياعرفات دورځي لپاره نه دی.

## موا جب غسل بيان

(٥١)وَوَجَبَ لِلْمَيِّتِ (٥٢)وَلِمَنْ أَسْلَمَ جُنُبًا (٥٣)وَإِلَّا لَذُبَ

**ترجمه**:اوغسل واجب دی دمړي لپاره ،اودهغه چالپاره چې اسلام قبول كړي په حال دجنابت كې ،كنه مستحب دی.

**تشريح**:(٥١)په كوموشيانوچې غسل واجبيږي هغه دوه دي. **فمنها** ١.مرګ، يعنی چې كوم مسلمان مړشي نومړي ته غسل وركول په ژوندي و مسلمانانو واجب كفائي دی دمړي غسل په اجماع سره ثابت دی دنبی كريم ﷺ ارشاددی چې ديوه مسلمان پربل مسلمان شپږحقونه دي له هغوڅخه يوداد ی چې ،الاموات ان يحضره (يعنی كله چې يومسلمان مړشي نوهغه بل دي ده ته حاضرشي )په دي وخت كې له حاضريدوڅخه مراددادی چې دده دغسل اوتجهيزاوتكفين لپاره حاضرشي.

ف:البته كه مړی نرښځی وو نودښځو حضراتورأيه داده چې هغه ته دي تيمم ورووهل شي اودښځورأيه داده چې په خپلوجاموكې دي غسل وركړای شي والاول هوالاولى،لمافي شرح التنوير (ويجب)اى يفرض (على الاحياء) المسلمين

(كفاية)اجماعا(ان يغسلوا)بالتخفيف(الميت )المسلم الالخنثى المشكل فييمم،وقال ابن عابدين:وقيل يغسل بثيابه والاول اولى (الدر المختار على هامش رد المحتار:۱۴۳/۱)

(۵۲)نمبر ۲. د كافر اسلام قبلول هم غسل واجبوي په دي شرط چې له مسلمانيدلو څخه مخكي دى جنب وي لقوله ﷺ ﴿من جاء يريد الاسلام ان كان جنبا فليغتسل والافلا﴾ (يعني كوم كافر چې اسلام راوړل غواړي نو كه هغه جنب وي نو غسل دي وكړي اوكه نه نو نه دي كوي )نيز دوجوب غسل يوله وجه داهم ده چې اوس څرنګه چې دى دلمانځه داداءكولو اراده كوي اوددي ارادي په وخت كې هغه جنب او مسلمان دى اوپرجنب مسلمان غسل واجب دى.

(۵۳)قوله والاای وان لم يكن الكافر الذى اسلم جنباالندب،يعنى كه چيرته كافرپه دي حال كې مسلمان شوچې جنب نه وو نوبيا پرده غسل كول واجب نه دي بلكه مستحب دي ولې چې نبي كريم ﷺ هراسلام راوړونكي ته دغسل حكم نه دكړى.

## داوبو داحكامو تفصيل

(۵۳)وَيَتَوَضَّأ بِمَاءِ السَّمَاءِ وَالْعَيْنِ وَالْبَحْرِ (۵۵)وان غير طاهر احدا وصافه اوانتن بالمكث (۵٦)لا بِمَاءٍ تَغَيَّرَ بِكَثْرَةِ الْأَوْرَاقِ أَوْ بِالطَّبْخِ أَوِ اعْتُصِرَ مِن شَجَرٍ أَوْ ثَمَرٍ ولا بِمَاءٍ اَوْ غَلَبَ عليه غَيْرُهُ أَجْزَاءً

**ترجمه**: او اودس كولى شي دباران او چيني اودرياب په اوبو سره ،كه څه هم كوم پاك شى داوبو يوصفت وربدل كې يا بدبويه شي اوبه دزياتو دريدلو له امله ،نه په داسي اوبو سره چې دپاڼو دډيرښت له امله متغيري شوي وي يا په پخيدلو سره يا نبتيځل شوي وي له درختي يا له ميوي څخه اونه په داسي اوبو سره چې پري غالب شوي وي بل شى داجزاوپه اعتبارسره.

**تشريح**: كله چې مصنف رحمه الله دطهارتينو يعني اوداسه اوغسل له بيان څخه فارغ شونو يې دآله طهارت يعني اوبو په بيان شروع وكړه.

**الحكمة**: انه وان كان معلوما بالبداهة ان الماء مليل للاقذار والاوساخ وكل ماينافى النظافة فان للشارع الحكيم فى تكليفنا ازالة النجاسة بالماء حكمة بالغة لان الماء يزيل عين النجاسة واثرها وهو الرائحة الكريهة التى تؤذى الانسان وكل مايقرب من الجسم الذى تنبعث منه الرائحة وايضا ان نفس هذه الرائحة عندما تختلط بالهواء وتدخل فى سائر البدن بواسطة المسام تضر بالجسم وتخل بالصحة لان الهواء سيال مركب لطيف قابل للتمدد هو يدخل بسهولة فى اضيق مسام الاجسام وكل الحيوانات محتلة به حتى المعادن تحتوى على كمية منه فضلا عن الانسان (حكمة التشريع)

(۵۴)دباران ،چينو اوسمندر داوبو په ذريعه سره له بي اودسيو(كه اصغروي كه اكبر)پاكي حاصلول جائزدي لقوله تعالى وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُورًا﴾ (يعني موږ له اسمان څخه پاكونكي اوبه رانازلى كړي دي ).

دچينو اوبه هم په حقيقت كې داسمان اوبه دي لكه چې دالله تعالى ارشاد دى﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَلَكَهُ يَنَابِيعَ فِي الْأَرْضِ﴾(اياتانه دي ليدلي چې الله تعالى له اسمان څخه اوبه نازلي كړي اوبيايې بهولي دي دغه اوبه په چينو كې دځمكي )په دي وجه په ذكر شويو اوبو پاكي حاصلول روا دي نزد مطلقو اوبو دپاك والى

یو دلیل دنبی کریم ﷺ داارشاددی﴿الماء طهور الاان یتغیر ریحه او طعمه او لونه بنجاسة تحدث فیها﴾ (یعنی اوبه پاکونکې دي دوې هیڅ شی نه شي مردارولی مګرداچې دنجاست دلویدوله امله ددوئ رنګ،خونداوبوی متغیرشي)اودسمندرداوبوپه باره کې فرمایې هوالطهور ماله والحل میته (یعنی دسمندر اوبه پاکې دي اومره (یعنې ماهی) یې حلال دی)په دې وجه دسمندرپه اوبوهم پاکې حاصلول جائزدي.

(55)قوله وان غیر احداوصافه ای ویتوضأبماء السماء وان غیر طاهر احداوصافه ،یعنی که له اوبو سره کوم پاک شی ګډشواوهغه داوبوله دریوصفتونو یعنی رنګ ،خونداوبوی څخه یوصفت متغیرکړلکه دسیلاب اوبه له کوموسره چې خاوره او ددرختوپاڼي وغیره ګډېږي یادزعفران(یوقسم دیرخوشبولرونکې ژړګل دی)اوبه یاهغه اوبه چې صابون ورسره ګډشوی وي ،نوترڅوچې نرم والی اوبهیدل پاتي وي نوپه دې اوبواودس کول جائزدي ولی چې دې ته مطلق اوبه ویل صحیح دي اوپه مطلق اوبو اودس جائز دی همدارازددغوشیانوله ګډیدلوڅخه داوبوژغورل ممکن هم نه دي ځکه په دې اوبواودس جائزدی، همداشان که اوبودېرودریدلوله امله بدبویه شوي نوهم په دې اوبواودس جائزدی ولی چې اوس هم په دوئ باندې داوبو اطلاق صحیح دی.

ف:مګرکه دومره اندازه زعفران په اوبوکې ګډشول چې بیاپه دوئ سره یوشی ته رنګ ورکول کیدای شوای نوپه دې اوبوسره اودس جائزنه دی لماقال شارح التنویر:وکذایجوز بماء خالطه طاهر جامدمطلقا(کالاشنان وزعفران)لکن فی البحرعن القنیة ان امکن الصبغ به لم یجز کنبیذالتمر (ردالمحتار:1/137)

ف:دمصنف صاحب رحمه الله له عبارت وان غیرطاهر احداوصافه څخه دې خبرې ته اشاره ده چې که داوبودوه یادرې صفتونه متغیرشول نوپه دوئ سره اودس کول جائزنه دي مګرصحیح داده چې که دپاک شی په ګډیدوسره داوبودرې سره اوصاف متغیرشول نوبیاهم په دوئ اودس کول جائز دی په دې شرط چې داوبوطبیعت یعنی رقت اوسیلان پاتې وي ولی چې کوم وخت چې قیس بن عاصم ﷺ ایمان قبول کړنونبی کریم ﷺ هغه ته امروکړچې غسل وکړه په اوبواوبیری سره، نوکه دپاک شی په ګډیدوسره په اوبوپاکې حاصلول جائزنه وای نونبی کریم ﷺ به ده ته په داسې اوبوداودس کولوحکم نه کاوه .قال شارح التنویر وکذایجوز بماء خالطه طاهر جامدمطلقا(کاشنان وزعفران وفاکهة وورق شجر)وان غیر کل اوصافه (الاصح ان بقیت رقته )ای واسمه لمامروقال ابن عابدین (قوله اون غیر کل اوصافه )لان المنقول عن الاساتذه انهم کانوایتوضئون من الحیاض التی تقع فیهاالاوراق مع تغیر کل الاوصاف من غیرنکیر (الدرالمختار مع ردالمحتار:1/137)

(56)قوله لابماء تغیربکثرة الاوراق ای لایتوضأ بماء تغیربوقوع الاوراق الکثیرة،یعنی په داسې اوبوسره پاکې حاصلول صحیح نه دي په کوموکې چې ددرختودیرې پاڼي لویدلې وي اواوبه یې متغیري کړي وي اویاکوم بل پاک شی له اوبوسره ګډ شي اوپه اوبوغالب(دیر)شي تردې چې اوبه له خپل طبیعت څخه وباسي (داوبوطبیعت نرموالی اوبهیدل دی)نوپه داسې اوبوسره اودس کول شرعاًمعتبرنه دی لکه شربت ،سرکه ،شورواودلوبیااوبه ولی چې له هغو څخه یوه ته هم ماء مطلق نه ویل کیږي لهذاپه هغو سره پاکې حاصلول جائزنه دي همداشان که په اوبوکې کوم شی(مثلاً ګازري،لوبیا وغیره)پاخه شي په دې شرط چې له هغه څخه مبالغه فی التنظیف مقصود نه وي نوپه هغو هم سره اودس کول جائزنه دی ولی چې هغو ته مطلق

اوبه وېل صحیح نه دي،اوهمداشان په داسې اوبوسره چې له کومې درختې یامیوې څخه نښتیځل شوې وي اودس کول جائزنه دی لماقلنا،اوپه داسې اوبوسره هم پاکې حاصلول صحیح نه دي په کوموچې یوپاک شی داجزاوپه اعتبارغالب شي لماقلنا.

ف:پاک شیان چې له اوبوسره ګډیږي مختلف دي ځکه نو پر اوبودهغوږغالب کیدلو مطلب هم جلاجلادی (۱)که ګډ شوی شی جامدوي نوپراوبوبېي دغالب کیدلو مطلب دادی چې اوبه داوبوله طبیعت څخه وباسي (داوبوطبیعت نرموالی اوبهیدل دي)یعنی کله چې اوبه ختمه شي نوګډشوی شی غالب ګڼل کیږي اوپه داسې اوبوسره اودس روانه دی اوکه داوبو طبیعت په خپل حال پاتې وي نوپه دوئ اودس کول روادی (۲)کله دجامدشی په ګډیدوسره داوبوطبیعت په خپل حال پاتې وي مګردې اوبوته نوی نوم ورکول کیږي لکه په اوبوکې دخرماپه ګډیدوسره داوبونوم نبیذتمرګرځي په داسې صورت کې که څه هم داوبوطبیعت په خپل حال پاتې دی مګرپه دوئ اودس کول جائزنه دی ولې چې اودس په مطلق اوبوسره جائزدی په داسې حال کې چې دااوبه مطلق اوبه نه ګڼل کیږي (۳)اوکه ګډشوی شی مائع وو نوله دوه حاله څخه به خالي نه وي یاخوبه له اوبوسره په اوصافوکې موافق وي یابه مخالف وي ،که موافق وو لکه مستعملي اوبه،نوبیاغلبه بالاجزاء معتبره ده یعنی دمستعملواوبواجزاء که له غیرمستعملواوبوڅخه دیروو نوګډ شوی شی غالب ګڼل کیږي اوپه دی اوبو سره اودس کول صحیح نه دی اوکه مستعملي اوبه لږوي نوګډشوی شی غالب نه ګڼل کیږي لهذاپه داسې اوبوسره اودس کول جائزدی ،اوکه په اوصافوکې مخالف وو نوله دوه حاله څخه به خالي نه وي یابه په دریوسره اوصافوکې مخالف وي یاپه ځینوکې ،که په دریوسروکې مخالف وو لکه سرکه ،نوبیادااکثراوصافوپه ښکاره کیدو سره ګډشوی شی غالب ګڼل کیږي اوپه داسې اوبوسره اودس نه صحیح کیږي ،اوکه په ځینواوصافوکې مخالف وو لکه شیدي (چې په رنګ اوخوندکې له اوبوسره مغایري دي )نوبیاددغه وصف په اعتباردغلبه معتبره ده نوکه دشیدورنګ اوخوندغالب وو نوپه دوئ سره اودس کول جائزدي کنه نه جائزنه دي .(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۱/۱۳۳).

(۵۷)وبماء دائم فیه نجس (۵۸)إن لم یکن عشرا في عشر (۵۹)وإلا فهو کالجاري (۶۰)وهو ما یذهب بتبنة فتوضأ منه إن لم یر أثره وهو طعم أو لون أو ریح

**ترجمه**،اوپه داسې ولاړواوبوسره (اودس جائزنه دی )په کوموکې چې نجاست لویدلی وي،که چیرته هغه نه وي لس په لسوکې ،که دانه وي نوهغه دجاري اوبوپه شان دي ،اوهغه هغه دي چې وابنه وړي نواودس دي وکړي په هغوسره په دې شرط چې ظاهرنه وي دنجاست اثردنجاست اثرخوند ،رنګ اوبوی دی.

**تشریح** :(۵۷)قوله بماء دائم ای ولایجوزالتطهیربماء دائم الخ:یعنی که چیرته په ولاړواوبوکې نجاست ولویږي نوپه دوئ اودس جائزنه دی خواه که مرادي لږوي اوکه دیره وي،اوکه داوبوصفتونه دنجاست له امله متغیرشوي وي اوکه نه وي ولې چې نبی کریم ﷺ له نجاست څخه داوبودساتلوحکم کړی دی لکه څرنګه چې دنبی کریم ﷺ ارشاددی چې په ولاړواوبوکې دي نه څوک بولې کوي اونه دي دجنابت غسل کوي ، اوهمداشان دنبی کریم ﷺ ارشاددی چې کله له تاسې څخه څوک له خوبه راپاځي نوله درې ځله پرېمنځلوبغیردي لاس په لوښي کې نه ننه باسې ولې چې ده ته څه معلوم چې دده لاس شپه چیرته تیره کړي ده

يعنى ممكنه ده چې دنجاست پرځاى لګيدلى وي ،نوكه دنجاست په لويدوسره اوبه نه مرداريدلاى نوبيادنبى كريم ﷺ دمنع كولوڅه فائده شوه .

ف:دامام مالک رحمه الله په نزدترڅوچې داوبويوصفت دنجاست له كبله متغيرشوى نه وي ترهغوپورې په دوئ اودس كول جائزدى ﴿لقوله ﷺ الماء طهور لا ينجسه شيء﴾(اوبه پاكې دي يوشى يې نه شي مردارولى) زموږ له طرفه ددې داځواب وركړل شوى دى چې ددې حديث دمفهوم مطابق تاسې پخپله هم عمل نه كوى ولى چې دحديث مفهوم دادى چې اوبه هيڅ وخت هم نه مرداريږي په داسې حال كې چې تاسې دصفت له تغيروروسته دمرداريدلوقائل ياست ،دامام شافعى رحمه الله په نزدكه اوبه ددوو منګيانوپه اندازه ياله دې څخه زياتې وي نودنجاست په لويدلوسره نه مرداريږي ﴿لقوله ﷺ إذا كان الماء قلتين لم يحمل خبثا﴾(كله چې اوبه دومنګيانوته ورسيږي نوهغه نه مرداريږي)،زموږ له طرفه ددې حديث داځواب وركړل شوى دى چې ددې حديث دامطلب نه دى چې ددوومنګيانوپه اندازه اوبه نه مرداريږي بلكه ددې معنى داده چې لږاوبه كه څه هم ددوومنګيانوپه اندازه هم وي هغه نجاست نه شي بارولاى بلكه مرداريږي .

(۵۸)قوله والا فهو كالجارى اى وان كان عشرا فى عشر فهو كالجارى ،يعنى پورته ذكرشوى حكم په هغه وخت كې دى چې ولاړې اوبه لس په لسوكې (لس ګزه اوږدوالى لس ګزه پلنوالى)نه وي كه اوبه لس په لسوكې وي نوهغواوبوحكم دجارى اوبودى اوهغه دنجاست په لويدلوسره نه مرداريږي اوكه هغه له لس په لسو څخه لږوي نوكوچنى تالاب دى اودنجاست په لويدلوسره مرداريږي،په دې قول كې دعاموخلګولپاره اسانى ده اوهمداقول مفتى به دى ،دلس په لسوكې توله رقبه يعنى داوږدوالى اوپلنوالى حاصل ضرب سل ګزه يعنى دوسوه ينځوس پوټه يادميټرپه حساب ۲۰۰۹ ميټره دى.

## دلس په لسوكې دحوض حكم

ف:په اصل كې دامام ابوحنيفه رحمه الله مذهب مختارتفويض الى رأى مبتلى به دى اودامام محمد رحمه الله رجوع هم دې قول ته ثابته ده مګرځرنګه چې دخلكورأيې مختلفې دي بلكه ځينې خلک داسې هم وي چې هغه بالكل رأيه نه لري نومتأخرينو علماوداسانې لپاره دلس په لسوكې قول معتبركړى دى لمافى شرح التنوير (والمعتبر)فى مقدار الراكد(اكبر رأى المبتلى به فيه فان غلب على ظنه عدم خلوص)اى وصول (النجاسة الى الجانب الاخر جاز والالا) هذا ظاهر الرواية عن الامام واليه رجع محمد وهو الاصح كما فى الغاية وغيرها وحقق فى البحر انه المذهب وبه يعمل وان التقدير بعشر فى عشر لا يرجع الى اصل يعتمد عليه ورد ما اجاب به صدر الشريعة لكن فى النهر وانت خبير بان اعتبار العشر اضبط ولا سيما فى حق من لا راى له من العوام فلذا افتى به المتاخرون الاعلام (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۱/۱۴۱)

ف:دعراقيينوقول دادى چې كه ولاړې اوبه غديرعظيم وي نوهغه دنجاست په لويدلوسره نه مرداريږي، غديرعظيم(لوى تالاب ) هغه دى چې دهغه ديوه طرف په ښورولوسره بل طرف نه ښوري ،بيادامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددمنځنى درجې دغسل حركت معتبر دى ولى چې په تالابونوكې دغسل ضرورت ډيرپيښيږي داوداسه په نسبت ځكه چې اودسونه عموماپه كورونوكې كيږي دامام ابويوسف رحمه الله په نزددلاس حركت

معتبردی اودامام محمد رحمه الله په نزدداودس کولوحرکت معتبردی(دامام محمد رحمه الله قول راجع دی)لمافي الشامية:وهل المعتبر حركة الغسل او الوضوء او الهدر وايات لانيها اصح لانه الوسط (ردالمحتار: ۱/۱۳۱)

دغدیرعظیم حکم دادی چې که دده په یوطرف کې نجاست ولویږي نوله بل طرف څخه یې اودس کول جائزدی ولې چې ظاهره داده چې دیوه طرف نجاست هغه بل طرف ته نه رسیږي ځکه چې په سرأیت کولوکې دحرکت اثردنجاست تراثر ډیردی کله چې دحرکت اثربل طرف ته نه رسیږي نودنجاست اثرپه طریقه اولی سره نه رسیږي.

**ف:** مفتی به قول دادی چې په کوم طرف کې نجاست لویدلی وي هغه طرف هم مراددی لمافي فتح القدير (قوله اشارة الى انه يتنجس مكان الوقع) وعلى هذا صاحب المبسوط والبدائع وجعله شارح الكنز الاصح ومشائخ بلخ وبخارى قالوا في غير المرئية يتوضأ من جانب الوقوع وفي المرئية لا وعن ابي يوسف انه كالجاري لايتنجس الا بالتغير وهو الذي ينبغي تصحيحه فينبغي عدم الفرق بين المرئية وغيرها(فتح القدير: ۱/۷۲)البته احتیاط دادی چې له دې طرف څخه اودس ونه شي لمکان الاختلاف.

**ف:** په حوض کې ضروري نه ده چې هغه به مستطيل يامربع وي کله کله مدورهم کیدای شي بلکه نن صباخودښائست اوډیزائننګ لپاره ګردي اواواوړده حوضونه جوړیږي داوږدوحوضونوحکم خودادی چې په مجموعي لحاظ سره به سل مربع لاسه وي مثلاً که اوږدوالی شل لاسه وي نوسوربه یې خامخا پنځه لاسه وي ،اودمدورحوض قطربایدڅلویښت لاسه وي لمافي الهندية :وان كان الحوض مدورا يعتبر ثمانية واربعون ذراعا كذافي الخلاصة وهو الاحوط كذافي محيط السرخسي (هنديه: ۱/۱۸)

**الالغاز:** اى حوض صغير لايتنجس بوقوع النجاسة فيه؟

**فقل:** حوض الحمام اذاكان الغرف منه متداركا ويكون الماء داخلاً من اعلاه.

**الالغاز:** اى ماء كثير لايجوز الوضوء به وان نقص جاز؟

**فقل:** هو ماء حوض اعلاه ضيق واسفله عشر في عشر.(الاشباه والنظائر)

**الالغاز:** اى غدير مساحته مائة ذراع في مائة وهو نجس مع انه غير متغير بالنجاسة؟

**فقل:** وهو ان يكون في طريق الماء الذى يصل منه الى الغدير نجاسة والماء يمر عليها وهو قليل ويجتمع في الغدير فكله نجس.(الاشباه والنظائر)

## دجاري اوبو حکم

(۵۹)که اوبه جاري وي نودنجاست په لویدلوسره نه مرداریږي لهذا په دوئ سره اودس کول جائزدی په دې شرط چې دنجاست اثرنه په کې ښکاریږي ولې چې داوبوله بهیدوسره نجاست نه پاتې کیږي په دې وجه دمرداري له لویدوسره سره جاري اوبه پاکې دي.

(۶۰)دجاري اوبوپه تعریف کې دفقهاواختلاف دی ځینې وایي چې جاري اوبه هغه دي وچ وابنه وړلی شي اوځیني وایي هغه دي دکوموچې استعمال مکررنه وي یعنی کله چې له لښتی څخه اوبه راوخیستل شي اولاس پرې پریمنځل شي اوبیرته په لښتی کې توی شي نو دوهم ځل چې کله له لښتی څخه اوبه رااخیستل کیږي نو اولنۍ اوبه په استعمال کې رانه شي بلکه اولنۍ اوبه په بهیدوسره مخته تللي وي

،او ځينو رأيه داده چې خلک کومې اوبه جاري ګڼي هغه جاري اوبه دي وهو الاصح ،او د نجاست له اثر څخه مراد رنګ ،خوند او بوی دی ولی چې په حواسو سره دهمدې شيانو وجود معلوميږي .

**ف**:دجاري اوبوصحيح تعريف دادی چې خلک کومې اوبه جاري ګڼي هغه اوبه جاري دي لمافی شرح التنوير: والجاری (وهو مايعد جاريا) عرفا وقيل مايذهب بتبنة والاول اظهر والثانی اشهر وقال ابن عابدين (قوله والثانی اشهر) لوقوعه فی کثير من الکتب حتی المتون وقال الصدر الشريعة وتبعه الکمال انه الحدالذی ليس فی درکه حرج لکن قدعلمت ان الاول اصح والعرف الان انه متی کان الماء داخلامن جانب وخارجامن جانب آخر يسمی جاريا وان الداخل وبه يظهر الحکم فی برک المساجد ومغطس الحمام مع انه لايذهب بتبنة والله اعلم (الدر المختار مع رد المحتار: ١/١٣٧)

**ف**:دتالاب دزوروالی په باره کې معتبر حد دادی چې دلپې اوبو په راخيستلو سره ځمکه ښکاره نشي لمافی الشامية: ﴿تنبيه﴾ لم يذکر مقدار العمق اشارة الی انه لاتقدير فيه فی ظاهر الرواية وهو الصحيح بدائع وصحح فی الهداية ان يکون بحال لاينحسر بالاغتراف ای لاينکشف وعليه الفتوی (ردالمحتار: ١/١٣٢).

| (٦١) وَمَوْتُ مَالَا دَمَ لَهُ فِيهِ كَالْبَقِّ وَالذُّبَابِ وَالزُّنْبُورِ وَالْعَقْرَبِ وَالسَّمَكِ وَالضُّفْدَعِ وَالسَّرَطَانِ لَا يُنَجِّسُهُ |
|---|

**ترجمه**: او مړه کيدل په اوبو کې دداسې حيوان چې په هغه کې بهيدونکې وينه نه وي لکه غوماشی ،مچ، مچمچی ،لړم ، ماهی ،چونګښه او کونی کبر نه مرداروي اوبه .

**تشريح**: (61) قوله وموت مالادم ،دمبتداء والی له امله مرفوع دی او لاينجسه يې خبر دی ،يعنی که په لږو اوبو کې داسې حيوان مړ شو په کوم کې چې بهيدونکې وينه نه وه نو دده په مرګ سره اوبه نه مرداريږي مثلاً غوماشی ،مچ ،مچمچی او لړم وغيره ولی چې سلمان فارسی رضي الله عنه فرمايي ﴿ان النبی ﷺ سئل عن اناء فيه طعام او شراب يموت فيه ماليس له دم سائل قال ﷺ فَهُوَ حَلَالٌ أَكْلُهُ وَشُرْبُهُ وَالْوُضُوءُ مِنْهُ﴾ (يعنی له نبی کريم ﷺ څخه دهغه لوښي په باره کې پوښتنه وشوه په کوم کې چې دخوراک څښاک شی وي چې په ده کې هغه حيوان مړ شي په کوم کې چې بهيدونکې وينه نه وي نبی کريم ﷺ وفرمايل دهغه خوړل څښل حلال دي او له هغه څخه اودس کول جائز دي )نيز داوبو مردارونکی په اصل کې بهيدونکې وينه ده کومه چې دمرګ په وخت کې دحيوان په اجزاو کې ګډيږي او دحيوان اجزاء له اوبو سره متصل وي په دې وجه اوبه مرداريږي همدا وجه ده چې ذبح شوی حيوان پاک دی ولی چې په ده کې بهيدونکې وينه نشته نو څرنګه چې پورته ذکر شوي حيوانانو کې هم بهيدونکې وينه نشته په دې وجه دده وئ په اوبه کې مړه کيدل اوبه نه مرداروي .

هم داحکم دماهی ،دريابی چنګښې او کونيکبر وغيره داوبو دحيوانانو هم دی ولی چې نجس په اصل کې بهيدونکې وينه ده او داوبو په حيوانانو کې بهيدونکې وينه نشته ولی چې وينه لرونکی حيوان په اوبو کې نه اوسي په دې وجه چې داوبو او وينې په طبيعت کې تضاد دی داوبو طبيعت يخ رطب دی او دوينې طبيعت ګرم رطب دی ،دماهي ماسوا په دانور شيانو کې دامام شافعی رحمه الله اختلاف دی هغه فرمايي چې کوم شی حرام وي او دهغه حرمت دکرامت له کبله نه وي نه دا دهغه دنجس والی نښه ده .

### دمستعملو اوبو حکم

| (٦٢) وَالْمَاءُ الْمُسْتَعْمَلُ لِقُرْبَةٍ أَوْ رَفْعِ حَدَثٍ (٦٣) إِذَا اسْتَقَرَّ فِي مَكَانٍ طَاهِرٍ لَا مُطَهِّرٍ |
|---|

**توجمه**: او كومې اوبه چې استعمال كړل شوي وي دثواب لپاره يا دبې اودسه لري كولو لپاره، كله چې هغه ودريږي په يو ځاى كې نو هغه پاكې دي (بل شى لره) پاكونكې نه دي.

**تشريح**: (۶۲) دشيخينو په نزد ماء مستعمل هغه دي كومې چې دبې اودسې دلري كولو يا دثواب او قربت په نيت استعمال شوي وي، دامام محمد رحمه الله په نزد ماء مستعمل صرف هغه دي چې دثواب په نيت استعمال شوي وي دامام محمد رحمه الله دليل دادى چې اوبه په دي وجه مستعملي كرځي چې دګناهو نونجاست له بدن څخه اوبو ته نقل كيږي او دګناهو نونجاست له بدن څخه صرف په دثواب په نيت لري كيږي لهذا صرف دثواب په نيت سره استعمال شوي اوبه مستعملي اوبه دي. دشيخينو دليل دادى چې دفرضو ساقطيدل يعنى بې اودسې لري كول هم موثر دي لهذا اوبو فساد دواړو شيانو (دبې اودسې دلري كولو لپاره يا دثواب په نيت استعمال) له امله ثابتيږي.

**ف**: دشيخينو رحمهما الله تعالى قول راجح دى لمافى تبيين الحقائق: واما سببه فاقامة القربة او ازالة الحدث به عند ابى حنيفة وابى يوسف رحمهما الله وعند محمد رحمه الله اقامة القربة لاغير وعند زفر رحمه الله ازالة الحدث لاغير والاول اى قول الشيخين اصح (تبيين الحقائق: ۱/۴۴)

(۶۳) قوله اذا استقر فى مكان اى الماء يصير مستعملا اذا استقر فى مكان، اوبه څه وخت مستعملي كرځي؟ امام ابو حنيفة رحمه الله فرمايي چې كله له اندام څخه جلاشي نو مستعملي كرځي ولې چې له جلاكيدلو څخه مخته دضرورت له امله دغو اوبو ته مستعملي نشي ويل كيداى اوله جلاكيدلو څخه وروسته هيڅ ضرورت نشته، صاحبين فرمايي چې كله اوبه له اندام څخه جلاشي او يو ځاى ودريږي نو بيا دوئ ته مستعملي ويل كيږي مصنف رحمه الله دضرورت له كبله همدا قول اختيار كړى دى.

**ف**: مګر صحيح اومفتى به قول دادى چې كله اوبه له اندام څخه جلاشي نو نو مستعملي كرځي لمافى الهندية: فالصحيح انه كما زال العضو صار مستعملا (هندية: ۱/۲۲)

دمستعملو اوبو په حكم كې اختلاف دى دشيخينو رحمهما الله تعالى په نزد مستعملي اوبه مرداري دي دحسن بن زياد په روايت له امام ابو حنيفه رحمه الله څخه نجس په نجاست غليظه سره دي او امام ابو يوسف رحمه الله روايت كړى چې نجسې په نجاست خفيفه سره دي ولې چې په دې اوبو سره نجاست حكميه لري كړل شوى دى نو دا اوبه په هغه اوبو قياسيږي چې په هغوئ سره نجاست حقيقيه لري كړل شوى وي، دامام محمد رحمه الله په نزد مستعملي اوبه دسركې په شان پاكې دي پاكونكې نه دي (يعنى بل شى نه پرې پاكيږي) ولې چې پاک شى اتصال له پاک شى سره نجاست نه لازموي البته له دوئ څخه دثواب دحاصليدلو له املهددوئ دطهوريت وصف متغير شو.

**ف**: مصنف رحمه الله همدا قول اختيار كړى دى چې مستعملي اوبه پاكې دي پاكونكې نه دي او همدا ظاهر الروايت دى وعليه الفتوى: لمافى الشامية: (قوله وهو طاهر) رواه محمد عن الامام وهذه الرواية هى المشهورة عنه واختارها المحققون قالوا عليها الفتوى لا فرق فى ذالک بين الجنب والمحدث واستثنى الجنب فى المجتبى الا ان الاطلاق اولى (رد المحتار: ۱/۱۳۷)

## دنابالغ کوچنی په ابو کې لاس وهل

**ف**:که کوچني هلک په لوښي کې لاس وواهه نو که دامعلومه وه چې دده لاس پاک دی نوپه دي اوبو سره اودس کول جائزدی اوکه دامعلومه وه چې دده لاس نجس وو نوپه دي اوبو سره اودس کول جائزنه دی اوکه په طهارت کې شک وو نواحتیاطاباید په هغواوبو سره اودس ونه شي مګرکه چاپه هغواوبوسره اودس وکړنو جائزدی ولی چې په شک سره اوبه نه مرداریږي لیکن مستحبه داده چې په پاکواوبو سره اودس وکړي ولی چې په مذکوره اوبو کې دنجاست احتمال شته، لمافی المنیة: ولوادخل الصبی یده فی الاناءان علم انه طاهرة بان کان معه من یراقبه جاز الوضوء بذالک الماء وان علم ان فیها النجاسة لم یجزوان حصل الشک لایتوضأبه استحسانااى لاجل التنزه والاحتیاط ولوتوضأبه جاز لانه لاینجس بالشک لکن المستحب التوضوء بغیره للاحتمال کمافی سور الجلالة(منیة المصلی:ص ۱۰۱).

## مسئلة البئر جحط

(۶۴)وَمَسْأَلَةُ الْبِئْرِ جحط

**ترجمه**:اود کوهی مسئله دجحط په حروفوسره منضبطه شوي ده.

**تشریح**:(۶۴)که کوم شخص دجنابت په حال کې له کوهی څخه دسولاغي دراکښلو لپاره په داسي حال کې ورکښته شوچې دهغه پربدن باندي مرداري نه وه اوکوهی کوچنی وي عشرافی عشرنه وي نوسوال دادی چې دداسي شخص په کوهی دکښته کیدوله امله کوهی مرداریږي اوکه به په خپل حال پاک پاته کیږي ؟اوداشخص به پاکیږي اوکه به پخپل جنابت پاتي وي ؟نوپه دي مسئله کې دري مذهبه دي یعنی ج،ح،ط،دکوموچې تفصیل په دي ډول دی چې ج دنجس والی نښه ده اوح دپخپل حال دپاته کیدلو نښه ده اوط دطهارت علامه ده ،دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزداوبه اوانسان دواړه نجس دي ولې چې دانسان هغه حصه چې اول له اوبوسره ولګیده له هغي حصي څخه جنابت لري شواواوبه مستعملي شوي اودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدمستعملي اوبه مرداري دي لهذااوبه مرداري شوي اوڅرنګه چې ددي شخص پرنوربدن هم دامرداري اوبه لګیدلي دي په کوموچې جنابت نه لري کیږي لهذاداشخص هم نجس پاتي شو.

**ف**:له امام صاحب رحمه الله څخه یوروایت دادی چې انسان پاکیږي ولی چې اوبه چې دانسان له بدن څخه جلاشوي نه وي ترهغونه مرداریږي همدا قول مختاراوصحیح دی لمافی الشامیة:وعن ابی حنیفة ان الرجل طاهر لان الماء لایعطی له حکم الاستعمال قبل الانفصال من العضو قال الزیلعی والهندی وغیرهماتبعالصاحب الهدایة وهذه الروایة اوفق الروایات ای للقیاس وفی فتح القدیروشرح المجمع انهاالروایة المصححة قال فی البحرفعلم ان المذهب المختارفی هذه المسئلة ان الرجل طاهروالماء طاهرغیر طهور(ردالمحتار:۱/۱۳۸)

دامام ابویوسف رحمه الله په نزدکوهی پخپل حال پاک دی اوانسان پخپل حال ناپاک دی ولی چې دده په نزددجنابت دلري کولولپاره داوبو پربدن باندي قصداً بهول شرط دي کوم چې دلته نه راغی لهذاداشخص بدستورجنب دی اوپه اوبو سره څرنګه چې نه بي اودسي لري شوي ده اوثواب حاصل شوی دی ولی چې دثواب قصدنشته لهذااوبه پخپل حال پاکې پاتي شوي ،دامام محمد رحمه الله په نزدانسان هم پاک شواواوبه هم پاکې دي ولی چې دده په نزددجنابت دلري کولولپاره پربدن اوبه بهول شرط نه دي لهذادده پربدن داوبه

خپله تويدنه دجنابت دلري کيدولپاره کافي ده اواوبه په دي وجه پاکي دي چې دامام محمد رحمه الله په نزدداوبو دمستعملوکيدولپاره دثواب نيت شرط دی کوم چې دلته نشته لهذااوبه هم پاکي دي.

ف:دلفظ جحط حروف دائمه ثلاثه په خارجي ترتيب هم دال دي ولې چې امام ابوحنيفه رحمه الله په خارج کې مقدم دی اودجحط په اولنی حرف يعنی ج سره دامام ابوحنيفه رحمه الله مذهب ته اشاره ده ،امام ابويوسف رحمه الله په دوهم نمبرده اودجحط په دوهم حرف يعنی ح سره دده مذهب ته اشاره ده اوامام محمد رحمه الله په دريم نمبردی اودجحط په دريم حرف يعنی ط سره دده مذهب ته اشاره ده.

## دپوستکي ددباغت بيان

(٦٥)وَكُلُّ إهَابٍ دُبِغَ فَقَدْ طَهُرَ (٦٦)إلَّا جِلْدَ الْخِنْزِيرِ وَالْآدَمِيِّ (٦٧)وَشَعْرُ الْإِنْسَانِ وَالْمَيْتَةِ وَعَظْمُهُمَا طَاهِرَانِ

**ترجمه**:اوکوم پوستکی چې پوخ کړای شي نوهغه پاکيږي ،ماسوادخنزيراوانسان له پوستکی څخه ، اوذانسان اومردارحيوان ويښتان اوددوئ دواړه هډوکي پاک دي

**تشريح**:دپوستکی له دباغت(پخولو)سره دري مسئلې تعلق لري . **نمبر ١** . خپله دپوستکی پاکوالی . **نمبر ٢**. دهغه اغوستل اولمونځ په کې کول. **نمبر ٣**. له هغه څخه ژی جوړول اوله هغه څخه اودس کول . داولنی مسئلې تعلق له کتاب الصيدسره دی اوددوهمې مسئلې تعلق له کتاب الصلوة سره دی اوددريمې مسئلې تعلق له همدې باب سره دی په دي وجه يې دباغت اهاب دلته ذکرکړی دی .

ف : اهاب هغه پوستکی يا(چمړي )ته ويل کيږي چې تراوسه پوخ شوی نه وي جمع يې اُهُب(بضمتين) راځي اوکوم پوستکی چې پوخ شي هغه ته اديم ،صرم اوجراب ويل کيږي جمع يې اَدَم (بفتحتين)راځي.

(**٦٥**)نوهرهغه پوستکی چې ددباغت قابل وي له دباغت څخه وروسته پاکيږي اوهغه پوستکی چې ددباغت قابل نه وي نه پاکيږي لکه دمارپوستکی اودموږک پوستکی ،اوددباغت حکم دمردارشوی حيوان په باره کې دی که نه نو دذبح شوی حيوان پوستکی بي له دباغته هم پاک دی .

ف:دپوستکی ددباغت معنی داده چې دپوستکی بوی اوغوړوالی په دواء ياخاوره اويالمرسره لري کړای شي په اولنی صورت کې بياکله هم نجاست عودنه کوي يعنی که په دوائي لګولوسره چاپوستکی وچ کړبياپه اوبولوندشونونجاست عودنه کوي يعنی پوستکی نه مرداريږي ،په دوهم اودريم صورت کې له امام ابوحنيفه رحمه الله څخه دوه راويته منقول دي يوروايت دعودکولواودوهم روايت دنه عودکولو ،اصح دوهم روايت دی يعنی نجاست بيرته نه راګرځي لمافي الشامية :لواصابه الماء بعدالدباغ الحقيقي لايعودنجسا باتفاق الروايات وبعدالحكمي فيه روايتان والاصح عدم العود(ردالمحتار:١٤٩/١)

ف:دپوستکي پخونکی که مسلمان وي که کافر بالغ وي که نابالغ عاقل وي که ليونی ښځه وي اوکه نرپه هرحال پوستکی له پخولووروسته پاکيږي لقوله ﷺ﴿ أيُّمَا إهَابٍ دُبِغَ فَقَدْ طَهُرَ ﴾ (يعنی هرهغه پوستکی چې پوخ کړای شي نوهغه پاکيږي ) اوکله چې پاک شونوله هغه څخه جامه جوړول اوپه هغي کې لمونځ کول ياله هغه

څخه مصله جوړول اوپرهغې لمونځ كول صحيح دى اوله هغه څخه ژى جوړول او بيا دهغه په اوبو سره اودس كول جائز دى.

ف: دامام مالک رحمه الله په نزد دمردار پوستكى نه پاكيږي ولى چې نبى كريم ﷺ دمرداري دپوستكى څخه له نفع اخيستلو منع كړي ده احناف ځواب وركوي چې دمرداري له پوستكى څخه دانتفاع ممانعت له دباغت څخه مخته دى په داسي حال كې چې موږ له دباغت څخه وروسته دانتفاع قائل يوله دباغت څخه مخكې موږ هم دمرداري له پوستكى څخه دانتفاع قائل نه يو.

(۶۶)مګر دخنزيرپوستكى په دباغت سره نه پاكيږي ولى چې خنزيرنجس العين دى چې دپاكى يې هيڅ صورت نشته لقوله تعالى ﴿فإنه رجس﴾ همداشان دانسان پوستكى دى چې دكرامت له كبله له دباغت وروسته دهغه استعمال جائزنه دى دامطلب نه دى چې دانسان پوستكى په دباغت سره نه پاكيږي بلكه مطلب دادى چې دانسان دپوستكى استعمال جائزنه دى په دباغت سره پاكيږي ولى چې انسان دخنزيرپه ځيرنجس العين نه دى.

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزددسپى پوستكى هم نه پاكيږي ولى چې دده په نزدسپى هم نجس العين دى داحنافوپه نزدځرنګه چې سپى نجس العين نه دى لهذا دسپى پوستكى په دباغت سره پاكيږي اونجس العين په دې وجه نه دى چې كه نجس العين واى نوپه ده به ښكاركول اودمال حفاظت كول جائزنه واى.

(۶۷)دانسان اودمردارشوي حيوان ويښتان اوهډوكي (په دشرط چې له غوړوالى څخه خالى وي )پاك دي كه په اوبوكې ولويږي نواوبه نه مرداريږي همداحكم دمرداردهرهغه جزدى په كوم كې چې ږوندنه وي لكه ښكرى،پلي اوښكرونه وغيره ولى چې دمرداراجزاء په دې وجه نجس دي چې په دوئ كې مرګ حلول كوي اومرګ چې په كوم شى كې حلول كوي هغه مرداريږي په داسي حال كې چې په پورته ذكرشويواجزاوكې له پيل څخه ژوندنه وو لهذاپه دوئ كې مرګ هم حلول نه كوي په دې وجه پاک دي ،دامام شافعي رحمه الله په نزدداشيان نجس دي ولى چې دادمرداراجزاء دي اومردارنجس دى نودهغه اجزاء به هم نجس وي دامام مالک رحمه الله په نزددمردارويښتان پاک دي هډوكي يې پاک نه دي.

## دڅاه (كوهى) بيان

(۶۸)وَتُنزَحُ الْبِئْرُ بِوُقُوعِ نَجِسٍ (۶۹)لَا بِبَعْرَتَيِ إِبِلٍ وَغَنَمٍ وَخُرْءِ حَمَامٍ وَعُصْفُورٍ (۷۰)وَبَوْلُ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ نَجِسٌ (۷۱)وَلَا مَالَهُ دَمٌ لَا يَنْجُسُ حَدَثًا (۷۲)وَلَا يُشْرَبُ أَصْلًا

**ترجمه**: اوودې ايستلي شي دكوهى اوبه دنجاست په لويدلوسره ،نه په يودوپچوسره ،اودكوترې اوچوغكې په ګندګې سره، اوبولي دماكول اللحم حيواناتومرداري دي ،نه هغه شى چې دبې اودسې سبب نه وي ،اونه دي ځښل كيږي بالكل.

**تشريح**: (۶۸)قوله وتنزح البير اى وينزح ماء البير ،ځرنګه چې دڅااوبه په الماء الذى يجوزبه الوضوء كې داخلي دي په دې وجه يې دكوهى داوبواحكام هم په دې باب كې ذكركړي دي .كه په كوهى كې نجاست ولويږي كه

نجاست لړوي اوکه ډير نوکوهی به راايستل کيږي (يعنی دکوهی ټولي اوبه به راايستل کيږي دامجازده ازقبيل ذکرمحل وارادة الحال) دکوهی اوبه راکښل دسلفوپه اجماع سره دکوهی دپاکوالی شرعي ذريعه ده ،دکوهی دديوالونووغيره دپريمنځلو ضرورت نشته ولی چې دکوهيانواحکام داثاروپه اتباع بنادي نه په قياس اوپه اثاروکې دديوالونووغيره دپريمنځلو ذکرنشته .

(۶۹)قوله لاببعرتی ابل وغنم ای لاينزح ماء البيربوقوع بعرتی ابل وغنم،يعنی داوښ اوبزي په يودووپچوسره اودکوتري اوچوغکي دګندګي په لويدلوسره کوهی نه مرداريږي لهذاداوبوداراکښلوضرورت نشته که پچي لندي وي اوکه وچي ، سالمې وي اوکه ماتي ،دقياس تقاضاخوداده چې دپچوپه لويدلوسره بايد کوهی مردارشي مګراستحساناً دعدم نجاست حکم شوی دی داستحسان وجه داده چې دباندوپه کوهيانوکې دنجاست له لويدلوڅخه مانع نشته اوحيوان شاوخواپچي کوي اوبادهغه په کوهيانوکې اچوي نودضرورت په اساس لږمعاف ګرځول شوي دي .اودکوتري اوچوغکي دګندګې په لويدوسره کوهی په دي وجه نه مرداريږي چې دکوتري اوچوغکي ګندګي مرداره نه ده ، دامام شافعی رحمه الله په نزدنجسه ده اودهغي په لويدوسره کوهی مرداريږي ولی چې دکوتري اوچوغکي خوړل شوي غذاء له خپل حالت څخه بل حالت يعنی دبدبويې اوفسادخواته متغيره کيږي لهذادادچرګي دګندګي په شان ناپاکه ده.،زموږدليل دادی دمسلمانانوپه مسجدونوکې دکوترپه ساتلواجماع ده حال داچې د مسجدونودپاک ساتلوحکم شوی دی دالله تعالی ارشاددی﴿وان طهرابيتی﴾ (زماکوريعنی مسجدپاک وساتئ )نوپه مسجدونوکې دکوترودساتلواجازت ورکول ددي خبري دليل دی چې دکوتروګندګي پاکه ده .

ف:دابايديادوساتل شي چې له يودوو پچوڅخه مراددادی چې حدکثرت ته ونه رسيږي يعنی دومره اندازه کوم چې ليدونکی ډيرونه ګڼي ،صحيح داده چې دباندواوښارونودکوهيانوحکم يودی يعنی په يودووپچوسره نه مرداريږي لمافی الخانية : والفاحش مايستکثره الناس والقليل مايستقله :وقال وبعرالابل والغنم اذاوقع فی البئرلايفسده ويستوی فيه الرطب واليابس والصحيح والمنکسرفی المصر کان ذالک اوفی المفازة.(الخانية:۱۰/۱)

(۷۰)دکوموحيواناتوغوښه چې خوړل کيږي دشيخينوپه نزددهغوئ بولي نجسي دي لهذاکه په کوهی کې ولويدلي نوکوهی مرداريږي په دي وجه به دکوهی ټولي اوبه راکښل کيږي ،دامام محمد رحمه الله په نزدنجسي نه بلکه پاکي دي ولی چې نبی کريم ﷺ دعرينه قبيلي خلګوته دعلاج په غرض داوښانودبولواوشيدودڅښلوحکم کړی وو .نومعلومه شوه چې مرداري نه دي کنه نبی کريم ﷺ به دڅښلوحکم نه ورکاوه .دشيخينودليل دنبی کريم ﷺ داارشاددی ﴿استنزهوا البول فان عامة عذاب القبر منه﴾(له بولوڅخه ځان وژغورئ ولی چې عام عذاب دقبرله دوئ څخه دی )دنبی کريم ﷺ داارشادمطلق دی دماکول الحم اوغيرماکول اللحم دواړوقسمونوحيواناتوبولوته شامل دی .همدارنګه ماکول اللحم حيوان هم اوبه څښي اوهغه اوبه بل حالت يعنی بدبويې اوفسادطرف ته متغيري کيږي لکه څرنګه چې دغيرماکول اللحم حيواناتوبولي دي لهذادغيرماکول اللحم حيواناتوپه شان دماکول اللحم حيواناتو بولي هم نجسي دي .

(۷۱)قوله لامالم يکن الخ،داعبارت مختصردی ټول عبارت په دي ډول دی لايکون الخارج من بدن الانسان نجسامالم يکن حدثاکالقئ القليل والدم الذالم يسل،يعنی دانسان له بدن څخه راوتونکي هغه شيان نجس نه دي په

کوموچې اودس نه ماتيږي مثلا لړقی اوهغه وينه چې له خپله ځايه ونه بهيږي ولی چې په ډکه خوله قی اوبهيدونکي وينه نجسه ده نو که لړقی اونه بهيدونکي وينه په اوبو کې ولويږي نو اوبه نه مرداريږي ولی چې لړوينه دغوماشي دويني په څيرده نو لکه څرنګه چې دغوماشي وينه نجسه نه ده کمامرنو نه بهيدونکي وينه هم نه ده مرداره.

(۷۲)قوله ولايشرب اصلاًای ولايشرب بول مايؤكل لحمه اصلاً،دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددماکول اللحم حيوان بولي په هيڅ حال کې هم څښل جائزنه دي که څه هم ددواء په طوريې څښي ولی چې په پاک حرام شی سره تداوی جائزه نه ده لکه دخري شيدي ،نوپه نجس حرام شی سره به څنګه جائزوي .اوهمدارنګه دبولوحرمت ثابت دی نوترکه چې دشفاء يقين نه وي له حرمت څخه اعراض نشي کيدلای اوحال داچې دبولوپه څښلوکې شفاء يقيني نه ده ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزددتداوي لپاره څښل جائزدي اودامام محمد رحمه الله په نزدمطلقاجائزدي لقصة العرنيين،ليکن دعرنيينوپه قصه سره استدلال په دي وجه صحيح نه دی چې ممکن دهغوئ دشفاء تيقن دي نبی کريم ﷺ ته په وحی سره معلوم شوی وي.

## دحراموشيانوداستعمال حکم

ف:دحراموشيانوله استعمالوڅخه بغيرکه ژوندپه خطرکې وو نودضرورت په اندازه استعمال يې بالاتفاق جائزدی اوکه ژوندپه خطرکې نه وو بلکه دناروغي دعلاج لپاره دحرام شی داستعمالولو ضرورت وو نوپه دي کې اختلاف دی دامام مالک رحمه الله په نزدپه دي صورت کې دحرام شی استعمالول مطلقاجائزدی ،دطرفينومسلک دادی چې مطلقاجائزنه دی اودامام ابويوسف رحمه الله مسلک دادی چې که يوپوهه ډاکټرووايل چې دحرام شی له استعماله بغيرجوړيدل ناممکن دي نوپه دي صورت کې دحرام شی استعمالول جائز دي ،دعرنيينوله قصې څخه دامام مالک رحمه الله تائيدکيږي احناف ځواب ورکوي چې دعرنيينوپه قصه استدلال صحيح نه ده ولی چې دعرنيينوپه باره کې نبی کريم ﷺ ته دوحی په ذريعه سره معلومه شوي وه چې ددوئ شفاء داوښانودبولوپه څښلوکې منحصره ده په دي وجه نبی کريم ﷺ داوښانودبولو داستعمالولوحکم ورکړی وو.

ف:دتداوی بالحرام په باره کې مولاناخالدسيف الله رحمانی صاحب ليکي :دامسئله په حراموشيانو سره دعلاج په جواز اونه جوازپسي تړلې ده ،ګومتقدمينوپه منع کې په دي مسئله کې درأي اختلاف وو ليکن متأخرين اوفقها معصرين اوس ددي په جوازمتفق دي دنمونې په شان دزيلعي يو عبارت نقل کوو :وفی النهاية :يجوز التداوی بالمحرم كالخمر والبول اذااخبره طبيب مسلم ان فيه شفاء ولم يجدغيره من المباح مايقوم مقامه والحرمة ترتفع للضرورة فلم يكن متداوياًبالحرام .(جديدفقهی مسائل:۵/۶۱)

(۷۳)ژ ځنزرون ذلو او سطايعزوت نځو قازة (۷۴)ژأزيغزون نغنځو حمامة (۷۵)ژ ګله ينځو قاة (۷۶)ژ النفاخ ځنزان او نفشيغه

**ترجمه**: او شل سولاغي دي راوکښل شي په درميانه سولاغي سره د موږک په څېر د حيوان په کوهی کې له مړه کېدلو څخه، او څلويښت بوښکي د کوترې په شان کې، او ټولي اوبه دا وکښلي شي د بزې په څېر په صورت کې او د حيوان د پړسيدو او وړيدو په صورت کې

**تشريح**: (۷۳) قوله وعشرون دلوا اى وينزع عشرون دلوا، يعنی که په کوهی کې موږک يا د موږک په څېر کوم حيوان مثلا چوغکه يا ممولا (يو قسم چوغکه ده چې په شايې توري کربني وي) يا بهجنګا (يوه تور رنګ والا چوغکه ده) يا کرګټ مړشي يا له دوئ څخه يو مړشوي په کوهی کې وا چول شي نو د دوئ له راکښلو وروسته به له کوهی څخه له شلو څخه تر ديرشو بوشکو پورې اوبه راکښل کيږي، شل بوشکې اوبه راکښل واجب دي او لس بوشکې نورې راکښل مستحب دي دا په دې وجه چې د موږک په باره کې مختلف روايات دی په يو روايت کې راغلی دي چې څوبوشکې دي وايستلې شي، په يوه روايت کې داوو بوشکو د راايستلو حکم دی، په يوه روايت کې د شلو بوشکو حکم دی او په يوه کې د څلويښتو بوشکو، زموږ علماو د شلو بوشکو والا روايت ته ترجيع ورکړې ده ولی چې دا روايت متوسط بين القليل والکثير دی لهذا شل بوشکې راايستل واجب دي او له دې څخه زياتې مستحب دي د خود موږک د حکم دليل دی او چوغکه وغيره څرنګه چې په جسم کې د موږک سره برابر دي په دې وجه د دوئ هم همدا حکم دی.

ف: د بوشکو په شمار کې منځنۍ بوشکه معتبره ده او منځنۍ بوشکه هغه ده کومه چې عموما د بنار په کوهيانو کې استعماليږي ولی چې په رواياتو بوشکه مطلقه ذکر شوې ده لهذا اعم او اغلب به مراد وي او اعم او اغلبه هغه بوشکه ده کومه چې په کوهيانو کې استعماليږي يو قول دا دی چې په کوم کوهی کې کومه بوشکه استعماليږي هغه معتبره ده او يو قول دا دی چې د يوې صاع (د درهم په حساب ۲۷۰ تولې او د مثقال په حساب ۲۷۳ تولې) په اندازه بوشکه معتبره ده. قال شارح التنوير (بدلو وسط) وهو دلو تلک البئر فان لم يکن مايسع صاعا وقال ابن عابدين (قوله وهو دلو تلک البئر) هذا هو ظاهر الرواية (الدر المختار مع رد المحتار: ۱/۱۵۹)

لهذا که يې په يوه داسې لويه بوشکه سره اوبه راوکښل شوې چې په هغې کې مثلا شل منځنۍ بوشکې ځايدلې نو د موږک د لويدلو په صورت کې په دې لويه بوشکه سره که صرف يوه بوشکه اوبه راوکښل شي نو کوهی پاکيږي او که په دومره کوچنۍ بوشکه سره اوبه راوکښل شوې کومه چې د منځنۍ بوشکې له نيمې سره برابره وه نو بيا به د شلو پرځای څلويښت بوشکې اوبه راکاږي.

(۷۴) قوله واربعون بنحو حمامة اى وينزح اربعون دلوا بوقوع نحو حمامة، يعنی که په کوهی کې کوتره يا د هغې په مثل بل کوم حيوان مړشو مثلا چرګه يا پشی نو د دی حکم په ظاهر روايت کې دا دی چې له څلويښتو څخه تر پنځوسو بوشکو پورې اوبه دي راوکښل شي د څلويښتو راکښل واجب دي او د پنځوسو راکښل مستحب دي په دې باندې دليل ماروا الطحاوی...... عن الشعبی فی الطير والسنور ونحوهما يقع فی البئر ينزح منها اربعون دلوا وماروا الطبرانی ....عن حماد بن ابی سليمان انه قال فی دجاجة وقعت فی البئر فماتت قال ينزح منها قدر اربعين دلوا او خمسين ثم يتوضا منها له حديث شريف څخه په څلويښتو او پنځوسو کې اختيار ثابتيږي لهذا ويل کيږي به چې څلويښت بوشکې اوبه راايستل واجب دي او پنځوس مستحب دي او يو قول دا دی چې له څلويښتو څخه تر شپيتو بوشکو دي راويستل شي.

(۷۵)قوله وكله اى يجب نزح كل ماء البير بموت نحو شاة يعنى كه په كوهى كښ بزه يا دبزي په مثل كوم حيوان مړشونو دكوهى ټولي اوبه راايستل واجب دي ولى چې كله يو حبشى دزم زم په كوهى كښ مړشونو ابن عباس او ابن زبير ﷺ دټولو اوبو دراايستلو فتوى وركړي وه ،وزه وغيره څرنګه چې په جسم كښ له انسان سره برابر دي په دي وجه د دوئ هم هغه احكم دى .

ف:مګر دسپى دلويدلو په صورت كښ دسپى مړكيدل شرط نه دي كه چيرته سپى كوهى ته ولويدو اوژوندى راوكښل شونو هم دكوهى ټولي اوبه راايستل واجب دي په دي شرط چې دده خوله په اوبه لګيدلي وي ولى چې دسپى پس خورده مرداره ده لهذا كوهى دده په پس خورده سره مرداريږي او همدا حكم دهرهغه حيوان دى چې پس خورده يې مرداره وي او دكومو حيواناتو چې پس خورده مكروه وي نو دهغوئ دلويدلو اوژوندي راكښلو په صورت كښ اوبه مكروه كيږي لهذا لس بوشكي اوبه بايد راوايستل شي لمافى شرح التوير:فيمابالموت لانه لواخرج حياوليس بنجس العين ولابه حدث اوخبث لم ينزح شئ الاان يدخل فمه الماء فيعتبربسوره فان كان نجسانزح الكل والالاهو الصحيح(الدر المختار على هامش رد المحتار:۱/۱۵۶)

(۷۶)قوله وانتفاخ حيوان اى وينزح كله لاجل انتفاخ حيوان ،يعنى كه په كوهى كښ كوم حيوان مړشواو وپړسيد ويا وريږيدو نو په دي صورت كښ به هم ټولي اوبه راايستل كيږي كه حيوان كوچنى وي كه لوى ولى چې دپړسيدلو او ريږيدلو له امله دحيوان دمردار واجزا ولوند والى په اوبو كښ خپريږي له دي څكه نو ټولي اوبه مرداريږي .

## دچينې لرونكي څاه بيان

(۷۷)وَمِائَتَانِ لَوْ لَمْ يُمْكِنْ نَزْحُهَا(۷۸)وَنَجَسُهَا مُنْذُ ثَلَاثٍ فَأْرَةٌ مُنْتَفِخَةٌ جُهِلَ وَقْتُ وُقُوعِهَا(۷۹)وَإِلَّا مُنْذُ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ

**ترجمه**:او دوسوه (بوشكي دي راوايستلي شي )كه ممكن نه دټولو اوبو راايستل،او مرداروي له درو ورځو څخه داسي موږك چې پړسيدلى يا شوريدلى وي او معلوم نه دلويدلو وخت يې،كنه له يوي شپي او ورځي څخه .

**تشريح** :(۷۷)قوله ومائتان اى وينزح من البئر مائتان من الدلاء فى الصورة التى يجب نزح الكل،كه له مخكښ ذكرشويو وجهو څخه له يو وجهى دكوهى ټولي اوبه راايستل ضرورى شو مګر كوهى چينه لرونكى وو يعنى اوبه يې نه ختميدلي نو په داسي صورت كښ دنجاست دلويدو په وخت به له كوهى څخه دوسوه بوشكي اوبه راوايستل شي نو كوهى پاك ګڼل كيږي، دا دامام محمد رحمه الله قول دى هغه چې دبغداد كوهيان وليدل دافتوى يې وركړه ولى چې دهغه ځاى په كوهيانو كښ همدومره اوبه وي دشيخينو په نزد چې په كوهى كښ څومره اوبه وي هغه راوايستل شي نو كوهى پاكيږي .

ف:داوبو داندازي دمعلومولو په باره كښ له امام ابويوسف رحمه الله څخه دوه روايته منقول دي . نمبر۱. په كوهى كښ چې تركومه ځايه اوبه دي داوږدوالى ،پلنوالى او ژوروالى په اعتبار سره دهغه په مثل به يو بل

غار و كښل شي او له كوهي څخه به او به ايستل كيږي او په دى كډى كې به اچول كيږي كله چې هغه كډى د ک شي نو د كوهي ټولي او به به را ايستل شوي ګڼل كيږي او كوهى پاک شو.

**نمبر ۲.** په كوهى كې دي بانس كښته كړاى شي كله چې ييخ ته ورسيږي نو را او دي كښل شي او و دي كتل شي چې او به تر كومه ځايه رسيدلى دى په هغه ځاى دي نښه ولګوي بيا دي له كوهى څخه په يو ځل لس بوشكى او به را و و باسي او بيا دغه بانس دوهم ځل بيا كوهى ته كښته كړي او و دي ګوري چې څومره او به كمى شوي دي مثلاً په كوهى كې لس پوټه او به دي او د لسو بوشكو په را ايستلو سره يو پوټ كمي شوي نو معلومه شوه چې په كوهى كې ټولي او به سل بوشكې دي لهذا ۹۰ بوشكې دي نوري هم را و كاږي نو كوهى پاک ګڼل كيږي

.

له امام ابو حنيفه رحمه الله څخه هم دوه روايته منقول دي ،**نمبر ۱.** د كوهى لرونكو قول معتبر دى كله چې هغوئ له او بو را كښلو وروسته وو ايې چې زمونږ په كوهى كې تر دي زياتي او به نه وي نو كوهى پاک ګڼل كيږي ،**نمبر ۲.** له دوو داسي كسانو څخه دي تحقيق وشي چې هغوئ ته د او بو په باره كې بصيرت حاصل وي له يو څه او به را ايستلو وروسته چې كله هغوئ وو ايې چې په كوهى كې تر دي زياتي او به نه وي نو بس كوهى پاک ګڼل كيږي دا قول اشبه بالفقه دى يعنى په فقهى اعتبار سره دا قول راجح دى او احتياط هم په دي قول كې دى لمافي تنوير الابصار و شرحه: يؤخذ ذالک بقول رجلين عدلين لهما بصارة بالماء به يفتى ،قال العلامة الشامي رحمه الله (قوله و به يفتى )وهو الاصح ،كافى،درر،وهو الصحيح وعليه الفتوى ،ابن كمال، وهو المختار معراج،وهو الاشبه بالفقه هداية الخ (الدر المختار مع الشامية:۱۵۷/۱ فصل في البئر)

(**۷۸**)كه په كوهى كې مړ موږک ياكوم بل حيوان پيدا شو مګر دا نه وه معلومه چې موږک يا بل حيوان څه وخت كوهى ته لويدلى دى نو كه پړسيدلى وو يا شوړيدلى وو نو د دري شپو او ورځو د لمونځونو اعاده به كوي.

(**۷۹**)قوله والا فمذ يوم اى وان لم تكن منتفخة فمنذ يوم ،يعنى كه پړسيدلى يا شوړيدلى نه وو نو په دي صورت كې حكم دادى چې له شوا روز څخه كوهى مردار و ګڼل شي نو كه د دي كوهى په او بو سره چا اودس كړي وي او لمونځ يې كړى وي نو د هغه د ديوه شوا روز لمونځونه را و ګرځوي او په كوم شى چې د دي كوهى او به لګيدلى دي هغه دي پريمينځي دا حكم د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دى د صاحبينو رحمهما الله مذهب دادى چې په دي خلكو د هيڅ شى اعاده نشته ترڅو چې دا يقين نه شي چې حيوان څه وخت كوهى ته لويدلى دى.

د صاحبينو دليل دادى چې د كوهى او به يقيناً پاكې وي مګر په كوهى كې د مردار حيوان د پيدا كيدو له امله په تيرو شو ورځو كې د كوهى د او بو په پاكى كې شک پيدا شو ولى چې دا احتمال هم شته چې او س څه ساعت مخكى دي ورلويدلى وي او دا احتمال هم شته چې څو ورځې مخكى دي ورلويدلى وي او يقين د شک له امله نه ختميږي لهذا ترڅو چې يقين را نشي چې دا حيوان كله ورلويدلى دى تر هغه وخت پوري د ناپاک حكم نشي لګيدلاى.

دامام ابو حنيفه رحمه الله دليل دادی چې په اوبوکې د حيوان لويدل ده دمرگ لپاره ظاهری سبب دی اوقاعده داده چې كه اصل سبب خفي وو نو په ظاهری سبب حکم لګول واجب دي لهذا دي حيوان مرگ نسبت به په اوبوکې لويدوته کيږي يعنی داسي به گڼل کيږي چې داحيوان په اوبوکې مړشوی دی مگردحيوان پرسيدل اوربيدل ددي خبري دليل دی چې ددي حيوان دمرگ وخت وتلی دی اودتقادم او وخت تيريدولږه مده دري ورځې ده په دي وجه دتقادم لږه مده په دري ورځي سره مقدره شوي ده اوپه کوم صورت کې چې حيوان پرسيدلی اوشوړيدلی نه وي نوداددي خبري دليل دی چې دحيوان په قريبه زمانه کې کوهی ته لويدلی دی اودلمانځه په باب کې دمقاديرولږترلږه مده يوه شپه اويوه ورځ ده ولی چې ترددي کم ساعات دي دکوموچې ضبط ممکن نه دی په دي وجه موږددي مقداريوه شپه اويوه ورځ مقررکړ.

ف:دامام ابو حنيفه رحمه الله قول احوط اومفتى به دی لمافی الشامية:فقداعتمدقول الامام البرهانی والنسفی والموصلی وصدر الشريعة ورجح دليله فی جميع المصنفات وصرح فی البدائع بان قولهما القياس وقوله استحسان وهو الاحوط فی العبادات (ردالمحتار: ۱/۱۶۱)

## دپس خوردي بيان

(۸۰)وَالعَرَقُ كَالسُّؤْرِ (۸۱)وَسُؤْرُ الآدَمِيِّ وَالفَرَسِ وما يُؤْكَلُ لَحْمُهُ طَاهِرٌ (۸۲)وَالكَلْبِ وَالخِنْزِيرِ وَسِبَاعِ البَهَائِمِ نَجِسٌ (۸۳)وَالهِرَّةِ (۸۴)وَالدَّجَاجَةِ المُخلَاةِ وَسِبَاعِ الطَّيْرِ وَسَوَاكِنِ البُيُوتِ مَكْرُوهٌ

**ترجمه**:اوخوله دپس خوردي په مثل ده ،اودانسان ،آس اوهغوحيواناتوپس خورده چې هغوئ غوښه خوړل کيږي پاکه ده، اودسپی اوخنزيراوځناورو پس خورده مرداره ده ،اودپشی اودکوڅه گشتي چرگي اودشيرونکومرغانو اوپه کورونوکې داوسيدونکو حيواناتوپس خورده مکروه ده.

**تشريح**:کله چې مصنف صاحب رحمه الله دحيوان په اوبوکې په لويدلوسره داوبودپاکی یاناپاکی له بيان څخه فارغ شونو اوس له حيوان څخه دپيداشويوشيانودحکم بيان کوي يعنی دخولي اوپسخوردي بيان کوي ،دسؤرمعنی ده پاتي شوي اوبه یاخواره وغيره چې هغي ته پس خورده ويل کيږي.

(۸۰)خوله دپس خوردي په څيرده يعنی دکوم شي چې پس خورده پاکه ده دهغه خوله هم پاکه ده اودکوم چې پس خورده مرداره ده دهغه خوله هم مرداره ده ولی چې دواړه له غوښي څخه پيداکيږي لهذا دیوه چې کوم حکم وي هغه حکم به دهغه بل هم وي.

ف:البته دخره خوله له دي حکم څخه مستثنى ده چې دده پس خورده خومشکوکه ده مګرخوله یې پاکه ده مشکوکه نه ده ولی چې نبی کريم ﷺ دحجازپه گرمي اودثقل نبوت سره په خره باندي بلاحائله سورشوی دی نوپه داسی حال کي دخره خوله وتل ښکاره ده مګرنبی کريم ﷺ له هغي څخه دځان ساتنی اهتمام نه ده کړی نولهذاددهغي دپاک والی علامه ده لمافی الکفاية:ولانه خص بر کوبه ﷺ معروريا والحرحرالحجاز والثقل ثقل النبوة فلابدان يعرق الحمارولان الشک فی طهورية سؤرالحمار لافی طهارته (الکفاية علی هامش الفتح: ۱/۹۳)

ف:زموږپه نزددپسخوردي ټول اقسام څلوردي ،**نمبر ۱.** پاکه ده لکه دانسان ،آس اوماكول اللحم حيواناتوپس خورده ، **نمبر ۲.** مکروه ده لکه دپشی وغيره پس خورده ،**نمبر ۳.** مرداره ده لکه دخنزير اوځناورويس خورده ، **نمبر ۴.**مشکوک فيه ده لکه دخره اوخچرپس خورده.

(۸۱) دانسان پس خورده پاکه ده که مسلمان وي که کافر، جنب وي که حائضه، همداشان دآس اوهغه حیوانانو پس خورده هم پاکه ده دکوموچې غوښه خوړل کیږي لکه غوا، بزه، اوښ وغیره ولې چې اوبه دناړو دګډیدوله امله پس خورده جوړیږي اوناړې له غوښې پیداکیږي دانسان اوماکول اللحم حیوانانو غوښه بلاکراهة پاکه ده لهذا ددوئ ناړې به هم پاکې وي نوپه کوم شی کې چې ددوئ ناړې ګډې شي نو هغه شی به هم پاک وي.
ف: دآس دجلاذکرکولو وجه داده چې دآس په غوښه کې اختلاف دی دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد حرامه ده مګر دامام صاحب رحمه الله په نزد دغوښې له حرام والی سره سره دآس پس خورده مرداره نه ده ولې چې د امام صاحب رحمه الله په نزد دآس غوښه دنجاست له امله نه ده حرامه بلکه دآله جهاد له امله کرامة حرام ګرځول شوې ده لمافی الهندیة: وسؤر الفرس طاهر بالاجماع فی الاصح (هندیة: ۱/۲۳)

## دشراب خورپس خورده

ف: که انسان شراب وڅښل اومتصل یې له یوه لوښي څخه اوبه وڅښلې نواوبه مرداریږي ولې چې دشرابو دڅښلو له امله دده خوله مرداره ده البته که ده دشرابو له څښلو وروسته دري ځله خپلې ناړې تیرې کړې نودده خوله پاکیږي اوس که دی اوبه وڅښي نواوبه نه مرداریږي په دې شرط چې دده په ناړوکې به دشرابو خوندیابوی نه وي لمافی شرح التنویر: (وشارب خمرفورشربها)..........(وهرة فوراکل فارة نجس) معلظ: قال ابن عابدین: (قوله فورشربها) ای بخلاف ما اذامکث ساعة ابتلع ریقه ثلاث مرات بعدلحس شفتیه بلسانه وریقه لم شرب فانه لاینجس ولابدان یکون المراداذالم یکن فی بزاقه اثر الخمر من طعم اوریح (الدر المختار مع ردالمحتار: ۱/۱۶۳)
(۸۲) قوله والکلب، مرفوع دی په اصل کې دلته لفظ دالکلب مضاف الیه ده مضاف دسورلفظ دی چې مقدردی تقدیر دعبارت دادی وسؤرالکلب بیامضاف حذف شو اومضاف الیه دهغه پرځای ودریدو اود مضاف اعراب مضاف الیه ته ورکړل شو همداشان پاتې نور معطوفات هم دي، یعنې دسپی اوخنزیرپس خورده مرداره ده﴿ لقوله ﷺ یغسل من ولوغ الکلب ثلاث مرات ﴾(یعنی پریمنځل کیږي به لوښی دسپی له خولې وهولوڅخه په ده کې دري ځله) کله چې لوښی مرداریږي نو اوبه په طریقه اولی سره مرداریږي ولې چې د سپی ژبه له اوبو سره لګیږي نه له لوښي سره، اوخنزیرځرنګه چې نجس العین دی ځکه نودده پس خورده هم مرداره ده همداشان دنوروځناورو لکه زمری، لیوه، پړانګ، ګیدړه اوفیل وغیره پس خورده هم مرداره ده. دامام شافعي رحمه الله په نزد دځناوروپس خورده پاکه ده، زموږدلیل دادی چې دځناورو شیدې او غوښه مرداره ده اوددوئ له پسخوردې څخه ځان ساتل هم ممکن دي نوبایدددوئ پس خورده دسپی اوخنزیر دپسخوردې په شان مرداره وي.
(۸۳) قوله والهرة ای وسؤرالهرة، دپیشي په پس خورده کې داحنافو اختلاف دی. دامام ابویوسف رحمه الله په نزددپیشي پس خورده پاکه غیرمکروه ده اودطرفینو رحمهما الله په نزد دپیشي پس خورده پاکه مګرمکروه ده. بیا امام طحاوی رحمه الله دکراهت تحریمي قائل دی او امام کرخي رحمه الله دکراهت تنزیهي قائل دی، دقیاس

تقاضاداده چې دپشي پس خورده مرداره شي ولې چې دپشي غوښه مرداره ده مګرځرنګه چې پشې په کوروکې ګرځي راګرځي چې له هغې ځخه دخوراک څښاک دشيانو ساتل ممکن نه دي لهذاضرورت په اساس دپشي دپسخوردي نجاست ساقط کړای شوی دی کوم ته چې نبی کریم ﷺ هم اشاره فرمايلې ده چې ﴿ إنها ليست بنجسة إنها من الطوافين عليكم والطوافات ﴾ (يعنی پشی مرداره نه ده ولې چې هغه په تاسي له چکرلګونکوځخه ده).

ف:مختاراومفتی به دطرفينوقول دی اواصح داده چې کراهت تنزيهي دی اوهغه هم په داسي صورت کې چې له پسخوردي ځخه ماسوا نوري اوبه وي لمافي الدرالمختاروسورهرة ودجاجة مخلاة مكره تنزيها على الاصح ان وجد غيره والالم يكره اصلا(الدرالمختارعلی هامش الشامية:۱/۱۶۴)

(۸۴)قوله والدجاجة المخلاة اى وسؤرالدجاجة المخلاة ،يعنی په مرداريودګرځيدونکي چرګي پس خورده هم مکروه تنزيهي ده ولې چې مخلاته چرګه له نجاست سره مختلطه وي په دي وجه ددي پس خورده له کراهت ځخه خالی نه ده البته که په داسي ډول تړل شوي وي چې ددي مشوکه پښوته نه شي رسيدلای ياپه داسي ځای کې تړل شوي وي چې په هغه ځای کې له چرګي ماسوادبل شی ګندګې نه وي نوبيا مکروه نه ده ولې چې له نجاست سره ددي اختلاط پاتي نه شو ،همداشان دځيرونکومرغانوپس خورده هم مکروه ده ولې چې ځيرونکي مرغان مردارخوري لهذاپه مرداريوله ګرځيدونکي چرګي سره مشابه دي ،همداشان په غاروکي داوسيدونکو حيوانانومثلامار،موږک وغيره پس خورده هم دغوښې دحرام والی له کبله مکروه ده دقياس تقاضاداده چې ددوئ پس خورده مرداره شي مګرپه کوروکې دګرځيدوله امله له دوئ ځخه ساتنه مشکله ده په دي وجه ددوئ دپس خوردي نجس والی ساقط شوالبته کراهت پاتي دی.

(۸۵)والحمار والبغل مشكوك يتوضأبه وتيمم إن فقدماء(۸۶)وأياقدم صح(۸۷)بخلاف نبيذالتمر

ترجمه:اودخره اوخچرپس خورده مشکوکه ده اودس دي وکړي په هغې سره اوتيمم دي هم ووهي که نوري اوبه نه وي ،اوکوم يوچې هم مخته کړي صحيح دی ،په خلاف دنبيذ التمر

تشريح:(۸۵)قوله والحماروالبغل مشكوك اى وسؤرالحماروالبغل مشكوك فيه ،يعنی دخره اوخچرپس خورده مشکوک فيه ده،مشکوکه ولې ده ؟نوځواب دادی چې دترددفی الضرورت له کبله مشکوکه ده ولې چې خره اکثره دکوروپه دروازوکې تړل کيږي نوضرورت شته مګرداضرورت دومره هم نه دی ځومره چې په پشي اوموږک کې دی ولې چې پشي اوموږک دکورپه تنګواوتياره ځايونوکې ننوځي په داسي حال کې چې خره داسي نه دي لهذاکه بالکل ضرورت نه وای لکه په سپي اوځناوروکې نوبيابه بلاشبه دخره پس خورده مرداره وای اوکه ضرورت يقينامتحقق وای نوبلاشبه دپشي په شان به حلاله اومکروه وای ،په داسي حال کې چې دلته من وجه ضرورت شته اومن وجه ضرورت نشته ،اوموجب طهارت اوموجب نجاست دواړه برابردي نولهذاتعارض له امله دواړه ساقط شول اواصل ته رجوع وشوه اواصل دلته دوه شيان دي داوبوپه طرف کې طهارت اودناروپه طرف کې نجاست دی اوپه دوئ دواړوکې کوم يوولی نه دی ځکه نومن وجه نجس اومن وجه پاکه ده.

ف:دخچرپس خورده هغه وخت مشکوک فیه ده چې دخرې له خیټې پیداشوی وي که دآسپې یاغواله نسه پیداشوی وو نوبیامشکوک فیه نه ده بلکه پاکه ده لمافي شرح التنویر:(و)سور(حماروبغل)امه حمارة فلوفرساً اوبقرة فطاهر کمتولدمن حماروحشي وبقرة (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۱/۱٦۵)

ف:په دي کې اختلاف دی چې شک په طهارت (پاکی ) کې دی اوکه په طهوریت(یعنی پاکولو)کې دی،یوقول دادی چې په طهارت کې دی ولی چې که دااوبه پاکي وای نوپاکونکي به هم وای ولی چې که کوم پاک شی په اوبوکې گډشي نوترڅوچې غالب شوی نه وي داوبوطهوریت نه ختمیږي لکه چې داوبوسره دګلاب اوبه ګډي شي ،دوهم قول دادی چې شک په طهوریت کې دی ولی چې که کوم کس دخره په پس خورده سره دسرمسح وکړي اووروسته ده ته مطلق اوبه په لاس ورشي نوپرده دسرپریمنځل واجب نه دي نوکه شک په طهارت کې وای بلاشبه به دسرپریمنځل پري واجب وای همدا قول راجح دی وعلیه الفتوی کمافي الخانية:والصحيح ان الشک في طهوريته (فتاوی قاضي خان علی هامش الهندية:۱/۱۸)

ف:ځیني مشائخوله دي څخه انکارکړی دی چې دخره پس خورده مشکوک فیه ده هغویٔ فرمایې چې دشریعت یوحکم هم داسي نه دی چې په هغه کې دي شک وي ،مګرمشکوک والی صحیح دی مطلب دادی چې الله تعالی ته خوحق معلوم دی شک دبندګانوپه اعتبارسره دی ددویٔ دفهم دقصورله امله نودشریعت په اعتبارسره داکومه داعتراض ور خبره نه ده .

(۸۶)که له اودس کونکی سره دمشکوکواوبوماسوانوري اوبه نه وي نوحکم دادی چې په مشکوکو اوبوسره اودس وکړي اوتیمم ووهي ،په تیمامه اواودس کي چې کوم یویې خوښه شوه مخته دي کړي ولی چې مطهرپه حقیقت کې یااوبه دي یاخاوره ،که اولنی وي نوددوهم په استعمال کې څه فائده نشته که مخته وي که وروسته ،اوکه مطهردوهم وي نوبیاتقدیم اوتاخیرڅه تاوان نه کوي لهذاکله چې په دواړوکې یومطهردی نوددواړوجمع کول واجب دي ترتیب واجب نه دی لکن الافضل تقدیم الوضوء والاغتسال عندنا،پورته ذکرشوی تفصیل دائمه ثلاثه مذهب دی ،دامام زفر رحمه الله په نزداول اودس کول ضروري دی بیاتیمم وهل ولی چې واجب الاستعمال اوبه شته لهذاتیمم جائزنه دی .

## دنبیذتمربیان

(۸۷)نبیذتمر(نبیذتمرهغه اوبوته ویل کیږي چې په هغوکې خورماوې واچول شي تردي چې دخورماوو خوږوالی اوبه ته ورشي لیکن تراوسه داوبونرم والی پاتي وي )هغه حکم نه دی کوم چې دمشکوکواوبوو بلکه که خالصي اوبه نه وي نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددي په دي اوبوسره اودس وکړي تیمم دي نه وهي ولی چې نبی کریم ﷺ په لیلة الجن کې کله چې مطلق اوبه پیدانه کړي نوپه نبیذتمرسره یې اودس وکړ ،امام ابویوسف رحمه الله فرمایې چې په دي صورت کې دي صرف تیمم ووهي په نبیذتمرسره دي اودس نه کوي ولی چې نبیذتمرمطلق اوبه نه دي اودمطلق اوبودنیستی په وخت کې حکم دتیمم طرف ته منتقل کیږي ،امام

محمد رحمه الله فرمايي چې په نبيذتمر دي اودس وكړي اوتيمم دې هم ووهي يعنى احتياطاً دي دواړه جمع كړي.

ف :فتوى دامام ابويوسف رحمه الله په قول ده لمافي الشامية:(قوله ويقدم التيمم على نبيذالتمر)اعلم انه روى في النبيذعن الامام ثلاث روايات.....الثالثة التيمم فقط وهي قوله الاخير وقدرجع اليه وبه قال ابويوسف والائمة الثلاثة واختاره الطحاوى وهو المذهب المصحح المختار المعتمدعندنا(ردالمحتار:١/١٦٧)

## بَابُ التَّيَمُّمِ

### داباب دتيمم په بيان كې دى

ف:باب لغةً په معنى دنوع دى ،اوپه عرف كې باب دكتاب هغه حصې ته ويل كيږي چې په هغې كې ديوې نوعې مسائلې ذكروي اوهغه فصل نه وي ،دتيمم لغوي معنى مطلق قصدكول دي اوشرعاً دپاكې خاورې په غرض دپاكې سره قصدكولوته تيمم ويل كيږي ،ځينې واى چې په عضوينومخصوصينوكې كې دپاكې خاورې استعمالولوته تيمم ويل كيږي ،مګرصحيح داده چې دمخ اودواړولاسونوپه پاكه خاوره سره دمسح كولونوم تيمم دى اوقصدكول دتيمامه لپاره شرط دى.

ف:څرنګه چې په اوبوسره طهارت حاصلول اصل دى اوپه تيمم سره طهارت حاصلول دهغه خليفه دى اوخليفه له اصل څخه وروسته وي په دي وجه مصنف رحمه الله له اودس څخه وروسته تيمم ذكركړ ،همدارنګه په قرآن كريم كې هم اودس ،غسل اوتيمم په همدي ترتيب سره مذكوردي .

ف:دتيمم مشروعيت په كتاب الله ،سنت رسول الله او اجماع دريوسره ثابت دى لقوله تعالى﴿فلم تجدوا ماءً فتيمموا صعيداً طيباً﴾(يعنى بياتاسي اوبه پيدانه كړي نوقصدوكړئ دپاكې خاورې )په حديث شريف كې راغلى دي انه ﷺ قال التراب طهورالمسلم ولوالى عشرحجج مالم يجدالماء (يعنى خاوره دمسلمان پاكونكي ده كه څه هم ترلسوكالوپورې وي ترڅوچې اوبه پيدانه كړي )اوامت هم دتيمامه پرثبوت اجماع كړې ده .

(٨٨)تَيَمَّمَ لِبُعْدِهِ مِيلًا عَنْ مَاءٍ(٨٩)اولِمَرَضٍ اوبَرْدٍ(٩٠)اوخَوفِ سَبُعٍ اوعَدُوٍّ اوعَطَشٍ اوفَقْدِ آلَةٍ

**ترجمه**:تيمم وهلى شي له امله دلرې والى له اوبوڅخه يوميل ،ياناروغي يايخ (داسې يخ چې دمرګ خطره وي) ،ياددښمن ياځناوريا تندې له ويرې څخه يادا وبودراكښلودآلې دنيستى څخه .

**تشريح**:(٨٨)كه له چاسره دومره اوبه نه وي چې درفع حدث لپاره يې كفايت كړى واى په داسې حال كې دى مسافروي يامسافرخونه وي مګرله ښارڅخه دباندې وي اووده اواوبوترمنځ يوميل (په شريعت كې يوميل دفرسخ دريمې حصې ته ويل كيږي كومه چې دڅلوريشت ګوتوپه ګزسره څلورزره شرعى ګزه وي په انګريزي حساب سره ١.٨٣كلوميټركيږي، تيزتلونكى كس دومره مسافه تقريباپه لس پنځلس منټه كې وهي )يازياته فاصله وي نو ددي شخص لپاره جائزده چې په پاكه خاوره سره تيمم ووهي لقوله تعالى ﴿فلم تجدوا ماءً فتيمموا صعيداً طيباً﴾ (يعنى بياتاسي اوبه پيدانه كړي نوقصدوكړئ دپاكې خاورې).

ف:دامام زفر رحمه الله په نزدکه دوخت له ختمیدوڅخه مخکښ اوبوته وسیدلای شونوتیمم جائزنه دی اوکه دوخت دوتلوخطره وه نوبیاتریومیل په لږه اندازه کښ هم تیمم جائزدی ،دامام ابویوسف رحمه الله په نزدکه داسي صورت وو چي که داشخص په اوبوپسي ولاړشي اوادس کوي نوقافله به دده له سترګوڅخه پټه شي اوولاړه به شي نودده لپاره تیمم جائزدی ،اودامام محمد رحمه الله په نزدمطلقادرمیلوفاصله دتیمم دجوازلپاره ضروري ده .

(۸۹)قوله اولمرض اوبرد ای یتیمم لمرض اوبرد،یعنی داوبوله لیري والی ماسواپه دي وخت کښ هم تیمم جائز دی چي اوبه خووي مګرداشخص ناروغه وي اوغالب ګمان یي داوي چي که اوبه استعمال کړم نومرض به مې ډیرشي یابه اوږدشي یاداوبوداستعمال لپاره چي دکوم حرکت ضرورت دی له هغه حرکت څخه عاجزه وي ،همداشان که بي اودسه یاجنبی شخص ته داویره وه چي که په یخواوبواودس یاغسل وکړم نومړبه شم اویابه ناروغه شم نوهم دده لپاره تیمم جائزدی لقوله تعالی ﴿مایریدالله لیجعل علیکم من حرج﴾ (یعنی الله تعالی نه غواړي چي په تاسي تنګي وکړي).

ف:دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدکه داشخص په ښارکښ وي اوکه په ښارکښ نه وي نودده لره تیمم جائزدی دصاحبینوپه نزددهغه چالپاره چي په ښارکښ وي تیمم جائزنه دی ولي چي په ښارکښ غالبا ګرمي اوبه پیداکیږي لهذاداشخص عاجزنه ګڼل کیږي ،امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایي چي ددي شخص په حق کښ عجز حقیقة ثابت دی لهذادعجزاعتباربه کیږي ،دامام صاحب رحمه الله قول صحیح دی په دي شرط که داشخص په ګرمواوبویادحمام په اجرة قدرت نه درلودمطلب داچي دده لپاره دغسل کولویوه طریقه هم میسره نه وه ،لمافی الشامیة :فصارالاصل انه متی قدرعلی الاغتسال بوجه من الوجوه لایباح له التیمم اجماعا(ردالمحتا:۲۳۳/۱)،اوصاحبین په ښارکښ داوبوله طلب څخه مخته په عدم جوازقائل دي اوکه له طلب څخه وروسته دښارخلکوداوبوله ورکړي څخه منع وکړه نوبیاددوئ په نزدهم په ښارکښ تیمم جائزدی کذافی حاشیة الشهیدعبدالحکیم الشاولیکوتي علی هامش الهدایة(ماخوذازدرمختارعلی هامش ردالمحتار:۲۳۳/۱باب التیمم).

## دفاقدالطهورین حکم

ف:له چاسره که دطهارت لپاره نه اوبه وي اونه خاوره ،هغه ته فاقدالطهورین ویل کیږي نن صبادهوائي سفرونوله امله داصورت ډیرپیښیږي خپله بنده چي په کال ۱۹۹۶میلادي کښ له کابل څخه قندهارته روان وو دمازدیګرپه وخت داصورت پیش شو ،ددي صورت په حکم کښ دائمه و اختلاف دی ،دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد به داسي شخص لمونځ نه کوي بلکه وروسته دي قضاراوړي اودصاحبینوپه نزدبه داسړی تشبه بالمصلین کوي یعني دلمونځ کونکی هیئت دي اختیارکړي څه دي نه واي هووروسته به قضاراوړي ،له امام صاحب څخه هم همدي قول ته رجوع ثابته ده اوفتوی هم پردغه قول ده لمافی شرح التنویر(والمحصوروفاقد)الماء والتراب (الطهورین)..........(یؤخرهاعنده وقالایتشبه)بالمصلین وجوبافیرکع ویسجدان وجدمکانایابساوالایؤمی قائماثم یعید کالصوم (به یفتی والیه صح رجوعه)ای الامام کمافی الفیض (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۱۸۵/۱)

ف:همداشان که کوم کس داسي ناروغه وو چي نه یي خپله اودس کولی شواونه تیمم ،اونه کوم بل داسي څوک وو چي ده ته یي اودس ورکړای وای یایي تیمم ورروهلی وای نوداکس دي هم تشبه بالمصلین وکړي

اووروسته دي ددي لمانځه اعاده وكړي .امام مالك رحمه الله فرمايي چې له داسي شخص څخه لمونځ ساقط دی نه يې په دغه وخت كې كول ضروري دي او نه يې وروسته قضا راوړل ضروري دي .

(٩٠)قوله اوخوف عدواى يتيمم لخوف عدو،يعني كه او به په داسي ځاى كې وي چې په تلوسره له دښمنه ياكوم ځناور څخه خطروو نوهم په تيمم وهلوسره لمونځ كولی شي ولی چې داشخص داوبوله استعمال څخه عاجزه دی اوداوبوله استعمال څخه دعاجزشخص لپاره تيمم جائزدی .همداشان كه په كوهی وغيره كې اوبه وي مګرداوبودراكښلوآله يعني بوشكه ،رسی وغيره نه وه نوهم دده لپاره تيمم جائزدی ولی چې داشخص هم داوبوله استعمال څخه عاجزدی .

**لطيفه**:وروى اعرابى يغطس فى البحرومعه خيط وكلماغطس غطسة عقدعقدة فقيل له ماهذا؟قال جنابات الشتاءاقضيهافى الصيف.(المستطرف)

**ف** : په شرح وقايه اودهغي په حاشيه كې داقاعده ليكلی ده چې هغه عذرچې تيمم رواكوي كله من جانب الله تعالى وي لكه مرض ،سخته ګرمي ،له تندی څخه ويره وغيره په دي صورت كې تيمم جائزدی اووروسته اعاده واجب نه ده اوكوم عذرچې من جانب العباد وي مثلايوڅوك دكفاروپه بندی خانه كې بندی وي اوهغه دی اودسه ته نه پرېږدي يامحبوس فى السجن وغيره په دي صورتونو كې په تيمم سره دلمانځه اداء كول جائزدي مګردمانع په ختيميدوسره اعاده واجبه ده .

(٩١)مُسْتَوْعِبًاوَجْهَهُ وَيَدَيْهِ مع مِرْفَقَيْهِ بِضَرْبَتَيْنِ(٩٢)وَلَوْجُنُبًااوحَائِضًا(٩٣)بِطَاهِرٍمن جِنْسِ الْأَرْضِ وَإِنْ لم يَكُنْ عليه نَقْعٌ(٩٤)وَبِهِ بِلَانَقْعٍ (٩٥)نَاوِيًالِلْقُرْبَةِفَلَغَاتَيَمُّمُ كَافِرٍ(٩٦)لَاوُضُوءُهُ

**ترجمه**:په داسي حال كې چې (دتيمم په وهلوكې )احاطه به كوي دمخ اودواړولاسونوسره له څنګلوپه دوه ځله وهلوسره، كه څه هم جنب وي ياحائضه وي ،په پاك شي دځمكې له جنس څخه كه څه هم نه وي په هغه باندي ګرځ ،اوپه ګرځ باندي له خاوري څخه له عاجزوكيدوبغير،په داسي حال كې چې (دتيمم) نيت كونكی به وی نولغوه ده دكافرتيمم،نه دهغه اودس.

**تشريح**:(٩١)قوله مستوعبا،حال دی دیتيمم له ضميرڅخه،يادمصدرمحذوف لپاره صفت دی اى يتيمم تيممامستوعبا، يعني دتيمم طريقه داده چې له دوضربوڅخه په يوه به دټول مخ مسح وكړي اوپه دوهمه به لاسونه له څنګلوسره مسح كړي لقوله ﷺ ﴿التيمم ضربتان ضربة للوجه وضربة لليدين﴾ (يعني تيمم ددووضربونوم دی يوه دمخ لپاره اوبله دلاسونولپاره ).

## دتميم دكيفيت بيان

**ف**:امام زهری رحمه الله فرمايي چې ترتخرګ پوري دي مسح كړي اوامام حسن رحمه الله له امام ابوحنيفه رحمه الله څخه يوروايت دانقل كړی دی چې لاسونه دي ترمړوندوپوري مسح كړي ،دامام شافعی رحمه الله قديم قول هم همدادی اودهغه قول جديد دادی چې ترڅنګلوپوري دي مسح كړي،اودامام مالك رحمه الله په نزدترمړوندوپوري مسح فرض ده اوترڅنګلوپوري سنت ده،مګرزموږ په نزدپه تيمم كې هم داودس په شيردټول اندام استيعاب شرط دی ولی چې تيمم داوداسه قائم مقام دی نو لكه څرنګه چې په اصل كې

استيعاب شرط دى نو په قائم مقام كې به هم شرط وي لهذا تر څنګلو پورې مسح كول ضروري دي وهو الصحيح وعليه الفتوى لمافي شرح التنوير: مسح هاوجهه ويديه مع مرفقيه بضربتين (الدر المختار على هامش رد المحتار: ١٧٣/١)

## دمقطوع اليدين حكم

ف: كه دچالاس له څنګلو څخه كښته پرې شوى وونو دپاتې برخې مسح دې وكړي او كه له څنګلو څخه لو پرې شوى وو نو بيا دلاسونو مسح كول ساقط دي لمافي شرح التنوير (مع مرفقيه) فيمسحه الاقطع ،قال ابن عابدين (قوله الاقطع) اى من المرفق ان بقي شئ منه ولو راس العضد لان المرفق مجموع راسي العظمين ،رحمتي، فلو كان القطع فوق المرفقين لايجب اتفاقا (الدر المختار على هامش رد المحتار: ١٧٣/١)

ف: حضرت ابن عمر ﷺ او حضرت جابر ﷺ دنبى كريم ﷺ دتيمم طريقه نقل كړې ده فرمايي چې دهغه كيفيت دادى چې خپل لاسونه په خمكه ووهي بيايې دومره وڅنډي چې خاوره لرې شي بيا په هغوئ سره خپل مخ مسح كړي بيا دوهم ځل په خمكه ووهي او وېې څنډي دخپل كيڼ لاس دڅلورو ګوتو په باطن سره دښى لاس ظاهر په دې دول مسح كړي چې دګوتو له سرو څخه يې پيل كړي او سره له څنګلو يې مسح كړي بيا دكيڼ لاس د ورغوى په باطن سره دښى لاس دباطن مسح وكړي تر مړوند پورې او دكيڼ لاس دبټې ګوتې باطن دښى لاس دبټې ګوتې په ظاهر باندې تير كړي بيا په همدې دول سره دكيڼ لاس مسح وكړي.

(٩٢) قوله ولو جنبا اى يكفيه ضربتان في التيمم ولو كان جنبا، يعنى تيمم په بې اودسي ،جنابت ،حيض او نفاس ټولو كې دنيت او فعل په اعتبار سره برابر دى نو څرنګه نيت او تيمم چې دبې اودسى لپاره كيږي همدا شان دجنابت وغيره لپاره هم دى ولې چې څه خلګ دنبى كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شول او عرض يې وكړ چې موږ دريګنى ځمكې اوسيدونكي يو موږ تر يو يو دوه دوه مياشتو پورې اوبه نشو پيدا كولاى او په موږ كې جنب وغيره ټول قسمونه انسان وي نبى كريم ﷺ وفرمايل تاسې په پاكه خاوره سره تيمم ووهئ ، مګر دابوبكر رازى رحمه الله په نزد تميز في النية ضروري دى دبې اودسې په تيمامه كې درفع حدث نيت كوي او دجنابت په تيمامه كې دې د رفع جنابت نيت كوي.

ف: مګر صحيح او مفتى به قول دادى چې په نيت كې دتميز ضرورت نشته بلكه چې دطهارت يا استباحة الصلوة نيت وكړي نو كافي دى لمافي البدائع: واما كيفية النية في التيمم فقد ذكر القدوري ان الصحيح من المذهب انه اذا نوى الطهارة او نوى استباحة الصلوة اجزاه (بدائع الصنائع: ١٧٨/١، كذافي الهندية: ٢٦/١)

(٩٣) قوله بطاهر ،دا په محل دجر كې دى دضربتين لپاره صفت دى اى بضربتين ملتصقتين بطاهر، مصنف كه دبطاهر پرځاى بطهور ويلى واى ښه به واى ولې چې مرداره ځمكه له وچيدلو وروسته طاهره ده مګر تيمم نه ده پرې جائز. مصنف رحمه الله له دې ځايه مايجوزبه التيمم (په كوموشيانو چې تيمم جائز دى) بيانوي، نو يې وفرمايل چې هرهغه شى چې دځمكې له جنس څخه وي كه څه هم په هغه ګرد نه وي په هغه تيمم جائز دى دا دطرفينو مذهب دى دامام ابويوسف رحمه الله په نزد صرف په خاوره او ريګ سره تيمم جائز دى او دامام شافعي رحمه الله په نزد صرف په راشنه كونكې خاوره سره تيمم جائز دى همدا دامام ابويوسف صاحب مرجوع اليه قول دى.

امام شافعي رحمه الله په ارشار باري تعالی ﴿ صعيدا طيبا ﴾ سره استدلال کوی هغه په دي دول سره چې دصعيد معنی خاوره او دطيب معنی راشنه کونکي ده همدا تفسير له حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه څخه هم مروی دی لهذا ددي تقاضا داده چې تيمم دي صرف په راشنه کونکې خاوره سره جائز شي ، دطرفينو دليل دادی چې صعيد دځمکې دمخ نو دی څرنګه چې ځمکه لوړه ده له همدې امله ددي نوم صعيد کښيښودل شو او طيب لکه څرنګه چې دمنبت په معنی دی همداشان طيب دطاهر په معنی سره هم کيدای شي نو دلته طيب دطاهر په معنی دی ولی چې داځای دطهارت دی لهذا دصعيدا طيبا معنی ترابا منبتا (راشنه کونکې خاوره )سره کول تقيد المطلق بلا دليل دی ،دطرفينو قول راجع دی لمافی الهداية: ويجوز التيمم عند ابی حنيفة رحمه الله بكل ما كان من جنس الارض الخ (الهداية: ۱۱۲/۱)

ف:ديوشی دځمکې له جنس څخه دکيدلو علامه داده چې که کوم شی په سوځيدلو سره ايره کيدو لکه درخته او يا ويلی کيدو لکه اوسپنه نو دا دځمکې له جنس څخه نه دی له دي ماسوا نور شيان دځمکې له جنس څخه دي لکه خاوره ،ريګ ، ډبره ،ګچ، چونه ،رانجه ،هرتال (يو زهريلی شی دی )وغيره ،لمافی الشامية:(قوله من جنس الارض)الفارق بين جنس الارض وغيره ان كل مايحترق بالنار فيصير رمادا كالشجر والحشيش او ينطبع ويلين كالحديد والصفر والذهب والزجاج ونحوها فليس من جنس الارض (ردالمحتار: ۱۷۵/۱)

(۹۴)قوله وبه الخ جار او مجرور په فعل مقدر پسې متعلق دی ای ويجوز التيمم بالنقع ايضا،يعنی دامام ابو حنيفة رحمه الله په ګرځ باندي تيمم جائز دی که څه هم دپاکې خاوروي له استعمال څخه عاجز نه وي ولی چې ګرځ هم نرمه خاوره ده لهذا په ګرځ باندي هم تيمم جائز دی په داسې حال کې چې دامام ابو يوسف رحمه الله په نزد په خاوره دقدرت لرلو په صورت کې په ګرځ باندي تيمم جائز نه دی .

ف: دامام ابو حنيفه رحمه الله قول صحيح او مفتی به دی لمافی الهندية:ويجوز بالغبار مع القدرة على الصعيد كذافی السراج الوهاج وهو الصحيح (هندية: ۲۷/۱ : كذا فی فتح القدير: ۱۱۳/۱)

(۹۵)قوله ناويا حال من ضمير يتيمم ،يعنی تيمم دي وکړي په داسې حال کې چې دتيمامه نيت کونکی به وي ،زموږ په نزد په تيمامه کې نيت فرض دی ولی چې دتيمم معنی په لغت کې قصد او اراده ده او قصد دنيت نوم دی او موږ ته دتيمم (په معنی دقصد او نيت ) امر شوی دی او امر دوجوب لپاره وي په دي وجه نيت شرط دی .

ف:همدا قول صحيح او مفتی به دی ،نو دکافر تيمم لغوه دی ولی چې په کافر کې دنيت اهليت نشته لمافی البدائع :فالنية شرط جواز التيمم فی قول اصحابنا الثلاثة حتى لا يصح تيمم الكافر وان اراد به الاسلام (بدائع الصنائع: ۱۷۸/۱)

(۹۶)او په اوداسه کې څرنګه چې داحنافو په نزد نيت فرض نه دی بلکه مستحب دی لهذا که کافر اودس وکړي نو اودس يې صحيح دی ولی چې اوبه فی نفسه پاکونکې دي نو دداوئ پاکې را وستل له نيت څخه مستغنی دی.

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزد څرنګه چې په اودس کې نيت فرض دی په دي وجه ده په نزد دکافر اودس هم صحيح نه دی، دامام زفر رحمه الله په نزد په تيمامه کې هم نيت فرض نه دی دده دليل دادی چې تيمم دا اودسه خليف دی او خليف دصحت په وصف کې له اصل څخه مخالف نشي کيدلای ،لهذا لکه چې اودس بغير له نيت

صحيح دی نوتيمم به هم بغيرله نيت څخه صحيح وي كه نه نو دخليفه به په صفت كې له اصل څخه مخالفت لازم شي.

## دتيمم دنواقضو بيان

(٩٧) وَلَا يَنْقُضُهُ رِدَّةٌ بَلْ نَاقِضُ الْوُضُوْءِ (٩٨) وَقُدْرَةُ مَاءٍ فَضَلَ عَنْ حَاجَتِهِ فَهِيَ تَمْنَعُ التَّيَمُّمَ وَتَرْفَعُهُ (٩٩) وَرَاجِي الْمَاءِ يُؤَخِّرُ الصَّلَاةَ

**ترجمه**: اوتيمم نه ماتوي مرتد كيدل بلكه دا اوداسه ماتونكي تيمم ماتوي، اوقدرت پيدا كول په اوبو باندې چې دده له حاجت څخه زياتې وي تيمم ماتوي اوپرا وباندې قدرت له تيمم څخه منع را ولي اوتيمم رفع كوي اوداوبو اميدلرونكې دې ځنډوي لمونځ.

**تشريح**: (٩٧) قوله بل ناقض الوضوء اى بل ينقضه ناقض الوضوء، يعنى كه مسلمان تيمم وواهه اوبيا مرتد شو (نعوذبالله) نودده مرتد والى تيمم نه ختموي ولې چې كفرله خودتيمامه سره منافي نه ده بلكه له شرط تيمم (يعنى نيت تيمم) سره منافي دی اودتيمم نيت له مرتد كيدو څخه مخته راغلى دی لهذا ردت دتيمم ناقض نه دی، بلكه هغه شيان چې اودس ماتوي هغه تيمم هم ماتوي ولې چې تيمم داودس خليفه دی اوپه دې كې شک نشته چې اصل ترخليفه ډير قوي يې نوكوم شی چې داقوي ماتونكی دی نو هغه اضعف لره په طريقه اولى سره ماتونكی وي.

**ف**: كه مصنف صاحب رحمه الله دناقض الوضوء پرځای ناقض الاصل ويلی وای نو دابه ښه او احسنه وه ولې چې داصل لفظ اودس اوغسل دواړوته شامل دی، داحسن والی وجه يې داده چې هرماتونكی داوداسه ماتونكی دتيمامه نه دی ځكه چې كه مثلاً چادجنابت لپاره تيمم وكړپيا ده ته حدث اصغرلاحق شونودده داوداسه تيمم ماتيږي مگردغسل لپاره كړی تيمم نه ماتيږي.

**ف**: قوله وقدرة ماء فضل عن حاجته اى وينقضه ايضاً القدرة ماء فضل عن حاجته، يعنى له حاجت څخه دزياتو اوبوپر استعمال قدرت پيدا كول هم تيمم ماتوي مثلاً تيمم لرونكې شخص ته دومره اوبه په لاس ورغلې چې په هغهوسره اودس كيدای شوای اوهغه پر اودس كولوقدرت هم درلودنودده تيمم ماتيږي ولې چې دتيمم د مشروعيت لپاره شرط دادی چې داوبوپر استعمال به قدرت نه لري نوداوبوپه استعمال قدرت لرل لكه څرنگه چې ابتداءً دتيمم لپاره مانع دی همداشان انتهاءً دتيمم لپاره رافع هم دی ولې چې په ايت مبارک كې له فلم تجدوا څخه فلم تقدرو مراددی لهذا دقدرت على الماء په صورت كې تيمم ماتيږي.

(٩٩) كه اوبه موجودې نه وي اوداميداوگمان غالب وو چې دلمانځه تراخيروخت پورې به اوبه پيداشي نوپه دې صورت كې لمونځ دمستحب وخت تراخيرپورې ځنډول مستحب دی نوكه اوبه پيداشوې واودس دې وكړي اولمونځ دې ادا كړي اوكه اوبه پيدانه شوې نوپه تيمم سره دې لمونځ وكړي، دلمانځه ځنډول په دې وجه مستحب دی ترڅوله دوو طهارتونو څخه په اكمل يعنى اودس سره لمونځ ادا شي.

**ف**: كه يې بغيرله ځنډولوپه تيمامه سره لمونځ ادا كړاوبيا اوبه په لاس ورغلې نوكه اوبه ديوه ميل دننه وي نودده لمونځ جائزنه دی اوكه يوميل ياتريوه ميل په زياته فاصله كې وي نوجائزدی، لمافى شرح التنوير (وندب

لراجيه )رجاء قويا (آخر الوقت)المستحب ولولم يؤخروتيمم وصلى جازان كان بينه وبين الماء ميل والالا (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:١/١٨٢)

(١٠٠)وَصَحَّ قَبلَ الْوَقتِ(١٠١)وَلِلفَرضَينِ(١٠٢)وَخَوفَ فَوتِ صَلاةِ جِنازَةٍ اَو عِيدٍ وَلَو بِناءً(١٠٣)لَا لِفَوتِ جُمُعَةٍ(١٠٤)وَوَقتٍ

**ترجمه** :اوتيمم صحيح دى له وخت څخه مخكې ،اوددوو فرضونولپاره ،اودلمانځه دجنازې اودلمانځه داخترد قضاكيدوله ويرې څخه كه څه هم په ډول دبناء وي ،نه دجمعه اووختې لمانځه دقضاكيدوله ويرې څخه .

**تشريح** :(١٠٠)قوله وصح قبل الوقت اى وصح التيمم قبل دخول الوقت ،يعنى دوخت له داخليدو څخه مخكې تيمم وهل جائزدى ولى چې تيمم زموږ په نزد طهارت مطلقه دى داسې نه دى چې دحقيقة حدث له وجودسره صرف دلمانځه داباحت لپاره مفيددى لهذا داوبودنيستى په صورت كې داوداسه بدل دى نولكه څرنګه چې اودس تروخت داخليدو مخته جائزدى همداشان به تيمم هم تروخت داخليدلو وړاندې جائزوي.

(١٠١)قوله وللفرضين اى ويصح تيمم واحدلفرضين ،يعنى دوه يازيات فرائض په يوه تيمم سره اداء كول هم جائزدي لما قلنا ،دامام شافعى رحمه الله په نزد څرنګه چې تيمم طهارت ضروريه دى يعنى دحقيقة حدث له وجودسره دضرورت له امله داباحت صلوة حكم شوى دى لهذاتروخت مخته اودبل فرض داداء كولولپاره دضرورت دنيستى له امله كافى نه دى .

(١٠٢)قوله وخوف فوت صلوة جنازة اى ويصح التيمم لاجل خوف فوت صلوة جنازة ،يعنى كه جنازه حاضره شوه اودمړي ولى له تاماسوابل څوك وو اوستااندېښنه وه كه په اودس كولومصروف شم نودجنازې لمونځ به تيرشي نوستا لپاره سره له قدرته په ښاركې دننه تيمم كول جائز دى همداشان كه داخترد لمانځه لپاره حاضرشوې اوداخطره وه چې كه په اودس مشغول شم نوداخترلمونځ به تيرشي نوهم تيمم كول جائزدى كه څه هم دبناء په ډول وي يعنى يوڅاپه اوداسه سره داخترلمونځ شروع كړى وو په منځ كې اودس مات شونودده لپاره جائزدى چې تيمم دي وكړى اوپردغه لمانځه دي بناء وكړي ولى چې دګڼه ګوڼې ورځ ده اودازدحام له امله كوم مفسدصلوة عارض پيښيداى شي لهذاداخترد لمانځه دقضاكيدوله ويرې څخه په تيمم سره لمونځ پوره كول جائزدي قوله ولوبناء اى ولو كان مصلى العيدين بناء.

**ف**:قاعده داده چې هرلمونځ چې لاالى بدل (كوم چې قضاشي اودده قائم مقام مثلاً قضاء وغيره نه وي) فوت كيږي نوداوبودهستى په وخت كې په تيمم سره دهغه اداء كول جائزدى ،زموږ په نزددجنازې لمونځ اوداخترلمونځ همداشان دى ولى چې ددوئ قضانشته نودالاالى بدل فوتيږي لهذاددوئ دفوتيدوپه صورت كې تيمم جائزدى .

**ف**:ليكن اشبه في الفقه دادى چې عدم جوازدولى په حق كې مطلق نشي پاته اوجوازدغيرولى په حق كې مطلق نه شي پاتې ؛لان غيرالولى قديكون ممن ينتظر اليه كالامام وامير الوقت وعزيز القوم كماصرح فى التجنيس بعده نجبر وكذاالولى قديكون ممن لاينتظر اليه ولايقدر على اعادة الصلوة كاكثر العوام فى زماننا (هامش الهدايه)

(١٠٣)قوله لالفوت جمعة اى لايصح التيمم لاجل خوف فوت صلوة جمعة ،كه په اوداسه دمشغوليدوله امله دجمعې دلمانځه دفوتيدلوخطره وه نودتيمم اجازه نشته بلكه اودس كول ضروري دي نوله اودس كولو څخه

وروسته كه يې دجمعې لمونځ پيدا كړنو دجمعې لمونځ دي اداء كړي اوكه دجمعې لمونځ پيدانه شو نو دماپښين لمونځ دادا كړي ولې چې جمعه كه څه هم فوت شوه مګر ددې خليفه يعنې دماپښين لمونځ شته نو دافوت لاالى بدل نه دى بلكه فوت الى بدل دى په دې وجه دجمعې دفوتيدلو له ويرې څخه تيمم جائزنه دى.

(۱۰۴)قوله ووقت اى لايصح لاجل خوف فوت صلوة وقت ،يعنى كه په اوداسه سره دمشغوليدوله امله دوختى لمونځ دقضاء كيدلو ويره وه نوهم به تيمم نه كوي بلكه اودس دې وكړي نوكه واقعى لمونځ فوت شوى وو نودفوت شوى لمانځه قضادې راوړي ولې چې دافوت الى بدل دى چې قضاده ،البته په داسې صورت كې ښه داده چې په تيمم سره لمونځ وكړي اووروسته دې اودس وكړي اوقضادې راوړي لمافى الدرالمختار:لايتيمم لفوت جمعة

ووقت......قال الحلبى:فالاحوط ان يتيمم ويصلى ثم يعيد،اويده العلامة الشامى رحمه الله (الدرالمختار على هامش الشامية:۱۸۰/۱ وكذافى احسن الفتاوى:۲/۵۳)

(۱۰۵)ولم يعد إن صلى به ونسي الماء في رحله (۱۰۶) ويطلبه غلوة إن ظن قربه (۱۰۷) وإلا لا (۱۰۸) ويطلبه من رفيقه فإن منعه تيمم (۱۰۹) وإن لم يعطه إلا بثمن مثله وله ثمنه لا يتيمم وإلا تيمم

**ترجمه**:اولمونځ دې نه راګرځوي كه يې كړى وو په تيمم سره په داسې حال كې چې هيرې شوې يې وې اوبه پخپله كجاوه كې ،اوهغه دې پلټنه وكړي داوبو ديوه غشي ترفاصلې پورې كه دده ګمان وو داوبو دنږدې والى ،كه نه نه دې كوي ،اواوبه دوغواړي له خپل ملګرى څخه نوكه هغه نه وركولې تيمم دې وكړي ،اوكه هغه اوبه نه وركولې مګر په ثمن مثل سره اوله ده سره ثمن وي نوهم دې تيمم نه كوي كنه تيمم دې وكړي.

**تشريح**:(۱۰۵)كه مسافر په تيمم سره لمونځ اداء كړ په داسې حال كې چې دده په كجاوه كې اوبه وې نوددې درې صورتونه دې/**نمبر ۱**. ده په خپله اوبه ايښې وې/**نمبر ۲**. بل چادده په امر ايښې وې/**نمبر ۳**. بل چابغيرددده له امره ايښې وې.

په دريم صورت كې بالاتفاق پرده اعاده نشته ولې چې انسان دبل چادفعل له امله دكوم حكم مخاطب نه وي ،اوپه اولودوصورتونوكې كه په دې ګمان سره چې زما په كجاوه كې اوبه نشته په تيمم سره لمونځ اداء كړحال داچې دده په كجاوه كې اوبه وې نوپه دې صورت كې بالاجماع تيمم نه دى صحيح شوى لهذا پرپه اودس كولوسره دلمانځه اعاده واجبه ده ،اوكه يې اوبه بالكل هيرې شوې اوپه تيمم سره لمونځ اداء كړبيا يې په ياد شوې نودطرفينو په نزدپرده دلمانځه اعاده نشته ،اودامام ابويوسف رحمه الله په نزددلمانځه اعاده واجب ده ولې چې له دې شخص سره اوبه شته جبكه تيمم دهغه چاپاره مشروع شوى دى چې له هغه سره اوبه نه وي حال داچې له ده سره اوبه شته نوددده تيمم صحيح نه دى ،دطرفينودليل دادى چې داوبوله وجودڅخه مراددادى چې پراوبو قدرت ولري اوپراوبو قدرت لرل بغيرله علم څخه نشي راتلاى نودداسې شولكه له ده سره چې اوبه نشته په دې وجه دده تيمم صحيح دى.

ف: دطرفينو قول راجع دی، مګرپه هغه وخت کښ چې اوبه يې په کجاوه کښ داسې ځای ايښې وي چې په هغه ځای کښ عادة شی هيريږي اوکه داسې ځای نه وي نوبيااعاده واجب ده، لمافی شرح التنوير(ونسی الماء فی رحله )وهومماينسی عادة(لااعادة عليه)ولوظن فناء الماء اعادالفاقاکمالونسيه في عنقه اوظهره الخ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۱۸۳/۱
ف: په نسی الماء سره احترازدی له هغه صورت څخه چې ده ته داوبو دنيستې شک ياګمان وي ولی چې په داسې صورت کښ که ده لمونځ وکړنوبالاتفاق به ددې لمانځه اعاده کوي، اوپه ثم ذکر الماء سره احترازدی له داسې صورت څخه چې دلمانځه په دوران کښ اوبه وريادې شي ولی چې په داسې صورت کښ بالاجماع دلمانځه اعاده ضروری ده، اودقيدچې ولګاوه چې الماء فی رحله په دې سره احترازراغی له دې صورت څخه چې اوبه دده په لاس کښ وي ياپې مخته پرتې وي اودده هيرې شي اوپه تيمم سره لمونځ وکړي ولی چې په دې صورت کښ هم بالاتفاق دلمانځه اعاده لازمی ده ولی چې نه هيريدونکی شی يې هيرشو فلايعتبر النسيان.

(۱۰۶)که دتيمم کونکی غالب ګمان داوو(له علاموڅخه يادعادل خبرورکونکی له خبرڅخه) چې دلته اوبه شته نوده لره تيمم نه ده جائز ترڅوچې دی داوبو طلب ونه کړي ديوې غلوه په اندازه سره (دغشی ويشتونکی اوغشی دلګيدودځای ترمنځ فاصلې ته غلوه ويل کيږي اوځينې وايي چې له درې سوه ګزه څخه ترڅلورسوه ګزه پورې غلوه ده )ولی چې غالب رأی په اکثرواحکاموکښ ديقين په منزله دی.

ف: اصح داده چې ترد ومره اندازې پورې پلټنه وکړي چې ده ته هم تاوان نه وي اوده ملګروته هم دانتظارزحمت نه وي لمافی شرح التنوير:وفی البدائع الاصح طلبه قدرمالايضربنفسه ورفقته بالانتظار(الدرالمختارعلی ردالمحتار: ۱۸۱/۱ )

ف: که په دې صورت کښ په کوم کښ چې طلب واجب وو متيمم بغيرله طلب څخه په تيمم سره لمونځ وکړنوپرده باندې دلمانځه اعاده واجب ده که څه هم له طلب څخه وروسته ده ته اوبه په لاس ورنشی لمافی الشامية:لکن فی البحرعن السراج ولوتيمم من غيرطلب وکان الطلب واجباوصلی لم طلبه فلم يجده وجبت عليه الاعادة عندهماخلافالابی يوسف ومفاده انه تجب الاعادة هنا ان لم يخبره (ردالمحتار: ۱۸۱/۱ )

(۱۰۷)قوله والالای وان لم يظن لايجب الطلب،زموږ په نزدپه تيمم کونکی باندې داوبوطلب واجب نه دی په دې شرط که ده ته داوبو دنژدې والی غالب ګمان نه وو، دامام شافعی رحمه الله په نزد بنی اوکيڼ لورته داوبوپلټنه کول شرط ده ولی چې په ﴿فلم تجدوا ماء فتيمموا﴾ کښ دتيمم حکم داوبودنيستې په وخت کښ دی اوداوبونيستې له طلب څخه وروسته متحققه کيږي په دې وجه داوبوتلاش کول ضروري دي، زموږدليل دادی چې په آيت مبارک عدم وجدان مطلق ذکرشوی دی دطلب يانه طلب قيدنشته په دې وجه ايت شريف په قيددطلب سره نه شي مقيدکيدلای اوځکه چې عموماپه ميدانوکښ اوبه نه وي اوداوبوپه وجودباندې دليل هم نه وي نوبه داويل کيږي چې داشخص اوبه لرونکی نه دی.

## له ملګري څخه داوبو دطلب کولوبيان

(۱۰۸)که له رفيق سفر(دسفرله ملګری)سره اوبه وي نوحکم دادی چې له تيمم کولوڅخه مخکښ له ده څخه اوبه وغوبنتل شي که ده اوبه درکړي نواودس به وکړي اولمونځ به اداء کړي کنه تيمم به وکړي ولی چې په

عموما او به له چا څخه نه منع كيږي بلكه د غوښتلو په صورت كې وركول كيږي ،او كه ملګري د اوبو له وركړي څخه انكار وكړنو څرنګه چې په دې صورت كې عجز متحقق شونو لهذا په تيمم سره دې لمونځ وكړي.

**ف**:كه له خپل ملګري څخه د اوبو له غوښتني مخته يې په تيمم سره لمونځ اداء كړنو د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دا تيمم كافي دى ولې چې د بل چا له ملک څخه غوښتل پر ده باندې لازم نه دي ،د صاحبينو رحمهما الله تعالى په دا تيمم كافي نه دى ولې چې اوبه داسي شى دى چې د هغه له وركړي څخه عموما څوک انكار نه كوي لهذا د ملګري سره د اوبو د وجود په صورت دى قادر ګڼل كيږي.

**ف**:په حقيقت كې د امام صاحب رحمه الله او صاحبينو ترمنځ په دې مسئله كې څه اختلاف نشته بلكه له ملګري څخه د اوبو غوښتل هغه وخت واجب دي چې دوركړي غالب ګمان وي كه نه نو غوښتل واجب نه دي لمافى الشامية:قلت وقدعلمت التوفيق بماقدمناه عن الجصاص من انه لاخلاف فى الحقيقة فقول المصنف ويطلبه اى ان ظن الاعطاء بان كان فى موضع لايعز فيه الماء وقدمنا عن شرح المنية انه المختار وانه الاوجه فتنبه(ردالمحتار:1/185)

(109)كه د اوبو څښتن په ثمن مثل (يعنى د دومره اوبو چې په دې ځاى كې څومره قيمت وي ) سره د اوبو وركولو ته تيار وو او له بې او د سره سرى سره ثمن مثل هم وو نو دده لپاره تيمم كول جائز نه دى ولې چې ده لره قدرت متحقق شو په دې وجه چې د اوبو په قيمت قدرت لرل په اوبو قدرت لرل دي البته كه د اوبو مالک د اوبو له وركولو څخه انكار وكړيا په غبن فاحش (ډيرګران يعنى دوچنده قيمت)سره اوبه وركولى نو پرده باندې په غبن فاحش سره د اوبو اخيستل لازم نه دي ولې چې په دې صورت كې ده لره ضرر دى او د مسلمان مال دده د روح په مثل قابل احترام دى او د روح په سلسله كې ضرر ساقط دى نو د مال ضرر به هم ساقط وي.

**ف**:له غبن فاحش څخه دلته مراد دادى چې په دې ځاى كې د اوبو څومره قيمت وي د اوبو مالک له هغه څخه په دوچنده قيمت سره اوبه وركوي لمافى شرح التنوير (ولواعطاه باكثر)يعنى بغبن فاحش وهو ضعف قيمته فى ذالک المكان قال ابن عابدين (قوله وهو ضعف قيمته ) هذامافى النوادر وعليه اقتصرفى البدائع والنهاية فكان هو الاولى بحر لكنه خاص بهذا الباب لمايأتى فى شراء الوصى ان الغبن الفاحش مالايدخل تحت تقويم المقومين(الدر المختار مع ردالمحتار:1/184)

## داكثر مجروح لپاره دتيمم حكم

(110)وَلَوْ أَكْثَرُهُ مَجْرُوحًا تَيَمَّمَ(111)وَبِعَكْسِهِ يَغْسِلُ وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا

**ترجمه**:او كه د چا اكثر بدن زخمى وو نو تيمم دې وكړي ،او دې په عكس كې دې پريمنځي او نه دې جمع كوي دواړه.

**تشريح**:(110)قوله ولو اكثره مجروحا اى لو كان اكثر بدن المكلف مجروحا يعنى كه د چا ټول بدن يا اكثر اندامونه زخمي وو نو هغه دې تيمم وكړي ولې چې دا عذر دى.

(111)او كه د دې عكس وو يعنى اكثر اندامونه يې روغ وو او په ځينې اندامونه يې زخمي وو نو روغ اندامونه دې پريمنځي او په د زخمي اندامونو په پټى دې مسح وكړي ،او داسې دې نه كوي چې روغ اندامونه پريمنځي او په زخمي اندامونو تيمم وكړي ترڅو د بدل او مبدل جمع كونكى نه شي ولې چې په شريعت كې د بدل او مبدل د جمع كولو نظير نشته، همدا حكم د بې او د سره شخص هم دى چې كه دده د اوبو داسې

اکثر اندامونه زخمي وو نو تیمم دي وکړي کنه روغ اندامونه دي پرېمنځي اودزخمي اندامونو په پټۍ دي مسح وکړي ،امام شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله فرمايي چې روغ اندامونه دي پرېمنځي اوپه زخمي اندامونو دي مسح وکړي.

ف:قوله وبعکسه یغسل ،داپه هغه صورت محمول دی چې په لاسونو باندی داسي زخم نه وي دکوم لپاره چې اوبه تاواني وي نوکه دچالاسونه داسي زخمي وو اوهغه دلاس له استعمال څخه بغيرخپل مخ اوپښي په اوبوکې نشوای داخلولای اوکوبل شخص اودس ورکونکی هم نه وو نوداشخص دي په تيمم سره لمونځ وکړي لمافي شرح التنوير :یتیمم لو الجرح بیدیه الخ (الدر المختار علی هامش رد المحتار:۱/۱۸۹)

ف:دغسل اواودس حکم یو دی مګرپه اوداسه کې داودسه داندامونو دعدداعتباردی اوپه غسل کې دعدد پرځای دټول بدن دمساحت اعتباردی نوکتل کیږي به که دله نیمايي څخه پرزیات بدن زخم وو نوتیمم دي کوي اوپرنیم بدن یاله نیم څخه پرلږبدن زخم وو نو مسح دي کوي لمافي شرح التنوير (تیمم لو) کان (اکثره) ای اکثر اعضاء الوضوء عدداوفي الغسل مساحة (مجروحا) اوبه جدری اعتبار اللاکثر (وبعکسه یغسل )الصحیح ویمسح الجریح (و) کذا(ان استویا غسل الصحیح) من اعضاء الوضوء ولاروایة في الغسل (ومسح الباقي) منها (وهو) الاصح لانه (الاحوط) فکان اولی (حوالہ سابق)

ف:که په روغ بدن داوبوله تویولو څخه دزخمي حصه ساتل له اوبو څخه مشکل وو نو هم دومره روغه حصه هم دزخمي په حکم کې شمارده قال في الشامية (قوله وبعکسه )وهو مالو کان اکثر الاعضاء صحیحا یغسل الخ لکن اذا کان یمکنه غسل الصحیح بدون اصابة الجریح والا تیمم حلیة فلو کانت الجراحة بظهره مثلا واذا صب الماء سال علیها یکون مافوقها في حکمها فیضم الیها (حواله سابق)

## بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ

### داباب پرموزو دمسح په بیان کې دی

مسح په لغت کې په یوشي لاس تیرولو ته ویل کیږي اوپه شریعت کې مسح علی الخفين په مخصوصه زمانه کې په مخصوصو موزو دلانده لاس تیرولوته ویل کیږي مسح علی الخفين ددي امت له خصائصو څخه ده ،خفین تثینه ذکرکولو سره دي خبري ته اشاره ده چې یې له عذره پریوه موزه مسح کول جائزنه دي.

مسح علی الخفين اوپه تیمم کې دامناسبت دی چې په دوئ دواړوکې هریوطهارت مسح دی، یاداچې له دوئ دواړو څخه هریودپرېمنځلوبدل دی ،البته تیمم دټولو اندامو بدل دی اومسح علی الخفين دځینواندامونو بدل دی ،یاداچې له دوئ دواړو څخه هریورخصت موقته دی ،یاتیمم ځرنګه چې په بدلیت کې کامل وو ولی چې تیمم داوداسه دټولو افعالو قائم مقام وو اومسح دیوه اندام دغسل یعنی غسل رجلین قائم مقام دی په دي وجه یې تیمم پرمسح علی الخفين باندي مخته کړ،یایې په دي وجه مخته کړچې تیمم په کتاب الله سره ثابت دی اومسح علی الخفين بناء علی قول صحیح له سنت څخه ثابت دی.

(۱۱۲) صَحَّ وَلَوْ امْرَأَةً (۱۱۳) لَاجُنُبًا (۱۱۴) اِنْ لَبِسَهُمَا عَلٰى وُضُوْءٍ تَامٍّ وَقْتَ الْحَدَثِ (۱۱۵) لِلْمُقِيْمِ يَوْمًا وَلَيْلَةً وَلِلْمُسَافِرِ ثَلَاثًا (۱۱۶) مِنْ وَقْتِ الْحَدَثِ (۱۱۷) عَلٰى ظَاهِرِهِمَا (۱۱۸) مَرَّةً بِثَلَاثِ أَصَابِعَ يَبْتَدِأُ مِنْ رُؤُوْسِ الْأَصَابِعِ إِلَى السَّاقِ

**ترجمه**: صحيح ده پر موزو مسح كول كه څه هم ښځه وي، نه د جنب لپاره، كه يې په پښو كړي وي په داسې اوداسه چې كامل وو د حدث په وقت كې، يو شپه او ورځ د مقيم لپاره او د مسافر لپاره درې ورځې او شپې، د حدث له وخت څخه، د موزو په ظاهره طرف، يو څل په دروګوتو سره شروع دی كې له ګوتو څخه د پنډۍ لورته.

**تشريح**: (۱۱۲) قوله صح اى اصح المسح على الخفين. يعنى د مسح على الخفين جواز ښځي او نرد واړو لپاره ثابت دی ولی چې له كومو نصوصو څخه مسح ثابته ده په هغوئ كې تعميم دی نرا و ښځي دواړو ته شامل دي. په دي باره كې قولى او فعلى ډيرا احاديث مشهور دي لكه چې امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايې چې زه تر هغه وخته پورې په مسح على الخفين قائل نه شوم ترڅو چې احاديث دورڅې درڼايې په مثل ترمارا و رسيدل او فرمايې چې كه كوم شخص د مسح على الخفين پر جواز عقيده نلري نو هغه بدعتى دی او مروی دی چې له امام ابوحنيفه رحمه الله څخه د اهل سنت والجماعت د مذهب په باره كې پوښتنه وشوه نو ده وفرمايل: هو ان يفضل الشيخين يعنى ابابكر و عمر على سائر الصحابة رضي الله عنهم وان يحب الختنين يعنى عثمان و على رضي الله عنهما وان يرى المسح على الخفين. البته كه يو چا مسح على الخفين جائز ګڼله مګر په عزيمت سره په عمل كولو يې مسح ونه كړه نو دا شخص عندالله ماجوردی.

**ف**: د مسح على الخفين په باره كې يې صح وويل واجب يې ونه ويل ولی چې بنده ته په مسح كولو يا نه كولو كې اختيار وركړل شوی دی او مستحب يې هم ونه ويل ځكه چې كه كوم شخص د جواز عقيده ولري او فعلاً مسح ونه كړي نو دا افضله ده لمافى الشامية: وجه التفريع انه لو كان المسح افضل لكان المناسب ان يقول وهو مستحب فعدوله الى قوله وهو جائز يفيد ان الغسل افضل منه لانه اشق على البدن (الشامية: ۱/۱۹۳)

(۱۱۳) قوله لا جنب اى لا يصح المسح اذا كان جنبا. يعنى پر موزو مسح له هر هغه حدث څخه وروسته جائز ده كوم چې اودس واجبوي لهذا له هغه حدث وروسته مسح جائز نه ده كوم چې د غسل واجبونكی دی لكه: جنابت. او انقطاع حيض او نفاس په صورت كې (لحديث صفوان رضي الله عنه كان النبي صلى الله عليه وسلم يأمرنا إذا كنا سفرا أن لا ننزع خفافنا ثلاثة أيام ولياليهن إلا من جنابة» (يعنى رسول الله ﷺ موږ ته حكم كاوه د سفر په حال كې چې موږ ونه كاږو خپلې موزوي تر درې ورځو او شپو پورې مګر له جنابت څخه) همدارنګه په هغه حدث كې چې اودس واجبوي د تكرار له امله حرج دی ځكه له ده وروسته د مسح رخصت دی حال دا چې د غسل لازمونكی حدث كې تكرار نشته نو حرج هم نشته لهذا د مسح رخصت نشته، او همدارنګه څرنګه چې په غسل د ټول بدن پر يمنځل واجب دی چې له موزو سره ممكن نه دی ځكه د موزو ايستل ضروري دي.

(۱۱۴) دا هم شرط دی چې موزې به په كامل اوداسه سره په پښو شوي وي بيا بې اودسي پيښه شي يعنى د حدث په وخت كې د ده اودس كامل وي نو پر موزو مسح كول جائز دي په دې سره احتراز راغی له هغه صورت څخه چې كه يو چا صرف پښي پريمنځلي او موزې يې په پښو كړي او بيا د پاتي اوداسه له پوره كولو څخه مخكې ده ته حدث پيښ شو نو دا اودس كولو پروخت پر موزو مسح كول جائز نه دي ولی چې له كامل اوداسه مخته حدث د پښو لورته هم سرايت كوي نو كه په دي صورت كې هم پر موزو مسح جائز شي نو دا دي مطلب به دا شي چې موزې رافع للحدث دی حال دا چې موزې رافع نه بلكه مانع للحدث دي.

(۱۱۵) قوله يوما وليلة اى صح المسح يوما وليلة، په دي عبارت كې د مسح د مدې بيان دى نو وېي فرمايل چې د مقيم لپاره د مسح مده يوه ورځ او شپه ده او د مسافر لپاره دري ورځې او شپې ده ﴿لقوله ﷺ يمسح المقيم يوما وليلة والمسافر ثلاثة ايام ولياليها﴾ (يعنى مقيم دي يوه ورځ او شپه مسح كوي او مسافر دي دري ورځي او شپې مسح كوي)، د امام مالك رحمه الله په نزد د مقيم لپاره مسح على الخفين جائز نه ده او د مسافر لپاره موقته نه ده بلكه مسافر چې ترڅو وغواړي مسح كولى شي.

(۱۱۶) قوله من وقت حدث اى ابتداء المدة يعتبر من وقت الحدث، يعنى كله چې اودس وكړي او موزي په پښو كړي نو له دي وخت څخه د مسح مدة نه شروع كيږي بلكه كله چې اودس مات شي له هغه وخت څخه به د مسح مدة شروع كيږي مثلاً نن د ماپښين پروخت موزي په پښو كړي او د مازديگر پروخت اودس مات شو نو كه دى مقيم وو نو يوه ورځ او يوه شپه وروسته يعنى صبا د مازديگر پروخت د مسح مدة ختميږي او كه مسافر وو نو دري ورځې او شپې وروسته پردغه وخت يعنى د مازديگر پروخت د مسح مدة ختميږي يعنى د مسح مدة مازديگر دا او داسه له ماتيدلو څخه وروسته شروع كيږي ولى چې موزه د حدث له سرايت څخه مانع ده نو د مسح مدة به هم له هغه وخت څخه شروع كيږي له كومه وخته چې موزي د حدث سرايت د رولى دى، د امام شافعي رحمه الله په نزد د مسح مدة د شروع كولو له وخته څخه پيل كيږي.

(۱۱۷) قوله على ظاهرهما اى يمسح على ظاهرهما، يعنى د موزو پر ظاهر مسح كول ضروري دي نو كه د موزي پر باطن يې مسح وكړه يا پر پونده ي يا پر پنډى نو دا جائز نه ده ولى چې پر موزو مسح كول خلاف قياس ثابته ده لهذا پر كوم ډول چې شريعت وارد شوى دهغه به پوره پوره رعايت كيږي او څرنگه چې د شريعت ورود د موزو د ظاهر پر مسح شوى دى ځكه به نو د موزو پر ظاهر مسح كول مشروع وي نه پر باطن، ﴿قال على رضي الله عنه لو كان الدين بالرأي لكان باطن الخف اولى بالمسح من اعلاه لكن رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يمسح على ظاهرهما﴾ (يعنى حضرت على رضي الله عنه فرمايلي دي چې دين پر رأيه بناواى نو د موزي كښته حصه د پورته حصي په نسبت د مسح زياته مستحقه وه ليكن ما رسول الله ﷺ د خپلو موزو د ظاهر پر مسح كولو وليدى)، او مسح پرهري موزي طولا او عرضا د لاس د دريو وړو گوتو په اندازه ضروري ده يعنى د لاس دري گوتي چې پر موزه كښيږدى څومره ځاى نيسي دهمدومره ځاى مسح كول ضروري دي كه لندي گوتي پر كښې كړي مسح وكړي او كه په باران يا بل شي باندى دومره اندازه ځاى لوند شي نو د مسح لپاره كافي دى. دا بايد ياد وساتل شي چې دا د فرضيت بيان دى پاته شو د سنت طريقي او اندازي بيان هغه د راروانې مسئلي په بيان كې شته.

ف: نو كه پر يو موزه د دوو گوتو په اندازه او پر بله موزه د څلورو گوتو په اندازه مسح وشوه يا په هره يوه موزه د درو گوتو تر اندازي كمه مسح وشوه نو دا كفايت نه كوي لما في الدر المختار: وفرضه عملا قدر ثلاث اصابع اليد اصغرها طولا وعرضا من كل رجل، قال ابن عابدين: (قوله من كل رجل) اى فرضه هذا القدر كائنا من كل رجل على حدة قال في الدرر حتى لو مسح على احدى رجليه مقدار اصبعين وعلى الاخرى مقدار خمس اصابع لم يجز وايضا قال العلامة قبل اسطر اشار الى ان الاصابع غير شرط وانما الشرط قدرها فلو اصاب موضع المسح ماء او مطر قدر ثلاث اصابع جاز وكذا لو مشى في حشيش مبتل بالمطر (الدر المختار مع الشامية: ۱/۱۹۹)

ف: د امام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نزد د موزو پر ظاهر مسح كول فرض دى او پر باطن سنت دى لانه ﷺ مسح اعلى الخف وباطنه (يعنى نبى كريم ﷺ د موزو پر پورته او كښته دواړو مسح وكړه)، ز موږ له طرفه دوى

ته خواب ورکړل شوی دی چې کوم حديث ستاسي مستدل دی امام ترمذی او امام ابوداؤد رحمهما الله تعالی دهغه تضعيف کړی دی ،قال ابن عابدين ومارواه شافعي رحمه الله شاذ لايعارض هذا مع انه ضعفه اهل الحديث ولهذا قيل انه يحمل على الاستحباب ان ثبت (ردالمحتار: ۱/۱۹۶)

(۱۱۸)دمسح طريقه داده چې يوڅل دښي لاس ګوتې دښي موزي پرمخکنۍ حصه باندي کښېښودل شي او دکيڼ لاس ګوتې دکيڼي موزي پرمخکنۍ حصه کښېښودل شي او بيا دواړه دپنډی لورته کښ کړای شي او ګوتې بايد خلاصې وي ﴿لحديث المغيرة ﷺ ان النبي ﷺ وضع يديه على خفيه ومدهما من الاصابع الى اعلاهما مسحة واحدة وكاني انظر الى أثر المسح على خف رسول الله خطوطا بالاصابع ﴾ (يعني نبي کريم ﷺ خپل دواړه لاسونه پرخپلو دواړو موزو کښېښودل او دګوتو له څخه يې پورته لورته کښ کړل يو ارمسح يې وکړه او ګويا زه دنبي کريم ﷺ دګوتو دکرښو اثر دمسح پرموزو باندي وينم )

ف: او که يې دپنډی له طرفه مسح وکړه نوهم جائزده مګر دسنت خلاف ده لما في قاضي خان: وصورة المسح على الخفين ان يضع اصابع يده اليمنى على مقدم خفه الايمن ويضع اصابع يده اليسرى على مقدم خفه الايسر ويمدها الى الساق فوق الكعبين يفرج بين اصابعه وان بدأ من اصل الساق ومد الى الاصابع جاز (قاضي خان على هامش الهندية: ۱/۴۶)

(۱۱۹)وَالْخَرقُ الْكَبِيرُ يَمْنَعُهُ وَهُوَ قَدْرُ ثَلَاثِ أَصَابِعِ الْقَدَمِ مِن أَصْغَرِهَا وَالْقَلِيلُ لَا (۱۲۰)وَيُجْمَعُ فِي خُفٍّ لَا فِيهِمَا (۱۲۱)بِخِلَافِ النَّجَاسَةِ وَالِانْكِشَافِ

**ترجمه**: او زيات څيروالی مانع دی مسح لره او هغه په اندازه دپښو درېو کوچنيو ګوتو دی او لږه اندازه څيروالی مانع نه دی ،او جمع کيږي به په يوه موزه کې نه په دواړو کې ،په خلاف دنجاست او کشف عورت.

**تشريح**: (۱۱۹)په کومه موزه کې چې څيري والی ډيروي نوهغه له مسح څخه مانع دی يعني پرداسي موزو مسح کول جائزنه دی ، او که څيري والی لږوو نوهغه مانع نه دی يعني پرداسي موزو مسح کول جائز دی دقياس تقاضاداده چې دلږڅيري والی په صورت کې هم مسح جائزنه شي ولی چې کوم ځای ښکاره ده په هغه کې حدث حلول کوي لهذا دهغه پرېمنځل ضروری دی او په پرېمنځلو کې پښې متجزی نه دی لهذا ټوله پښه پرېمنځل لازميږي ،مګر استحساناً دلږڅيري والی په صورت کې مسح جائز ګرځول شوي ده ولی چې عادةً موزه له لږڅيري والی څخه خالی نه وي نو که دلږڅيري والی په صورت کې دمسح اجازت ورنه کړل شي نو په دي کې حرج دی او حرج شرعاً مدفوع دی لهذا لږمعاف دی جبکه له ډيرڅخه موزه خالی وي نو په کښلو کې دحرج دنيستی له امله دموزو دکښلو حکم دی مسح جائزنه ده دامام شافعی رحمه الله په نزد لږڅيري والی هم مانع دی او دامام مالک رحمه الله په نزد ډيرڅيري والی هم مانع نه دی .

دقليل او کثير معيار داده چې که دپښې دکوچنيو درېو ګوتو په اندازه ياترډي زيات دپښې کومه حصه دموزي له يوځايه ښکاره شوه نوداکثيرڅيروالی دی او که له دي څخه کمه اندازه ښکاره شوه نوداڅيري والی قليل دی ولی چې په پښه کې اصل ګوتي دي همدا وجه ده چې که څادبل دپښو ګوتې پري کړي نوپرده پوره ديت لازميږي ،او په پنځو ګوتو کې دری ګوتی اکثري دي وللاكثر حكم الكل لهذا دری ګوتی دټولي پښې قائم مقام دي نو دردرېو ګوتو ښکاره کيدل ګويا دټولي پښې ښکاره کيدل دي په دي وجه پرموزي مسح جائزنه ده او دپښو په ګوتو کې دکوچنيو ګوتو په معتبرولو کې احتياط دی.

**ف**: دا بايد ياد وساتل شي چې د دريو ګوتو د اندازې اعتبار هغه وخت دی چې څيرې والی له ګوتو څخه علاوه په کومه بله حصه کې وي، که څيرې والی د ګوتو پر سر وو نو بيا د دريو ګوتو اندازه نه بلکه درې ګوتې پخپله معتبرې دي لهذا که بټه ګوته او له هغې سره د څنګ ګوته ښکاره شوه نو پر داسې موزې مسح کول جائز دي که څه هم دغه څيرې والی د دريو کوچنيو ګوتو په اندازه وي ترڅو چې دريمه ګوته نه وي ښکاره شوې لما في الدر المختار: هذا لو الخرق على غير اصابعه ........ فلو عليها اعتبر الثلاث ولو كبارا، وفي الشامية (قوله اعتبر الثلاث) اى التى وقعت فى مقابلة الخرق لان كل اصبع اصل فى موضعها فلا تعتبر بغيرها حتى لو انكشفت الابهام مع جارتها وهما قدر ثلاث اصابع من اصغرها يجوز المسح وان مع جارتها لا يجوز (الدر المختار مع الشامية: ۱/۲۰۰)

(۱۲۰) قوله لا فيهما اى لا يجمع فى الخفين، يعنې که يوه موزه څو ځايه څيرې وه نو دا ټول به سره جمع کيږي که د دريو کوچنيو ګوتو اندازې ته ورسيد نو دا څيرې والی د مسح لپاره مانع دی يعنې پر داسې موزه مسح کول جائز نه ده او که د واړه موزې څو ځايه څيرې وي نو د دوئ څيرې والی به نه سره جمع کيږي ولې چې د يوې څيرې والی په بله کې له سفر کولو څخه مانع نه دی.

(۱۲۱) قوله بخلاف النجاسة والانكشاف اى بخلاف النجاسة المتفرقة فى خفيه اولوبه وبخلاف انكشاف العورة المتفرق، بخلاف نجاست او کشف عورت يعنې که پر دواړو موزو يا پر جامو څو ځايه لږ لږ نجاست وو کوم چې په يو ځای جمع کولو سره د يوه درهم اندازې ته رسيد نو د هغه اعتبار به کيږي لهذا نه پر داسې موزو مسح کول جائز دي او نه په داسې جامو کې لمونځ کول جائز دي ولې چې دا شخص د نجاست حامل دی او کوم شخص چې د نجاست حامل وي که هغه متفرق وي که مجتمع، که ديوه درهم په اندازه وو نو له هغه څخه پاکي حاصلول واجب ده له پاکی حاصلو څخه بغير د هغه شخص لمونځ نه صحيح کيږي، همدا حکم د کشف عورت هم دی چې که څو ځايه لږ لږ عورت ښکاره وي نو هغه به سره جمع کيږي او کتل کيږي به که د د اندام د څلورمې په اندازه وو نو لمونځ صحيح نه دی ولې چې کشف عورت هم د نجاست په شان دی.

## دمسح دنواقضو بيان

(۱۲۲) وَيَنْقُضُهُ نَاقِضُ الْوُضُوءِ (۱۲۳) وَنَزْعُ خُفٍّ (۱۲۴) وَمُضِيُّ الْمُدَّةِ إِنْ لَمْ يَخَفْ ذَهَابَ رِجْلِهِ مِنَ الْبَرْدِ (۱۲۵) وَبَعْدَهُمَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ فَقَطْ (۱۲۶) وَخُرُوجُ أَكْثَرِ الْقَدَمِ نَزْعٌ

**ترجمه**: او ماتوي مسح هغه چې ماتوي اودس، او ايستل د موزې، او د مدې د مسح تيرېدل که ويره نه وه د ضايع کيدو د پښې د يخنې له امله، او له دوئ دواړو وروسته دی پرېمنځي صرف پښې، او وتل د اکثر پښې وتل دي.

**تشريح**: (۱۲۲) کوم شيان چې اودس ماتوي هغه مسح هم ماتوي ولې چې مسح على الخفين دا د اودس جزدی نو کوم چې کل لره ماتونکی وي هغه جز لره په طريقه اولی سره ماتونکی وي.

(۱۲۳) قوله ونزع الخف اى ينقضه ايضا نزع الخف، يعنې ديوې موزې په ايستلو سره هم مسح ماتيږي ولې چې پښې ته بې اودسي سرايت کولو څخه پښه مانع وه نو کله چې مانع لرې شو نو بې اودسي سرايت وکړ لهذا مسح ماته شوه، همدارنګه که د همدې پښې پرېمنځل لازم کړای شي او پر بله پښه مسح وکړي نو په

یوه وظیفه کې به مسح او غسل سره جمع شي کوم چې ممنوع ده ،دخف په مفرد ذکرکولو سره یې اشاره وکړه چې دیوي موزي ایستل مسح ماتوي اوکه چې دیوي موزي ایستل مسح ماتوي نو ددواړو ایستل به په طریقه اولی سره مسح ماتوي.

(۱۲۴) قوله ومضی المدة داعطف دی پر ونزع الخف باندي ای وینقضه مضی المدة ،یعنی د مسح دمدي په تیریدو سره هم مسح علی الخفین ماتیږي ﴿لحدیث صفوان بن عسال ﷺ ان النبی ﷺ کان یامرنا ان لاننزع خفافنا ثلاثة ایام﴾ (یعنی نبی کریم ﷺ موږته امرکاوه چې موږ خپلي موزي تردریوورځوپوري نه وباسو)له حدیث څخه داثابتیږي چې موزي تردریوورځوپوري پښوته دحدث له سرایت څخه مانع دي او کله چې مده پوره شي نو مخکنی حدث دپښوطرف ته سرایت کوي نوګویاده پښې پریمنځلي نه دي ،مګرپه پورته ذکرشویو صورتو نوکې دپښوپریمنځل په هغه وخت کې ضروري دي چې دیخنی له کبله دپښو دضائع کیدلو خطره نه وي که نه نو دپښی په شان دي پرتولو موزو مسح وکړي او دا مسح ترکومه وخته موقته نه ده بلکه ترکومه وخته چې دضیاع خوف وي مسح به کوي ولی چې ضرورت دی اودضرورت ځایونه دشریعت له دلائلو څخه مستثنی دي لمافی الدرالمختار:ومضی المدة .......ان لم یخش بغلبة الظن ذهاب رجله من بردللضرورة فیصیر کالجبیرة فیستوعبه بالمسح ولایتوقت(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار: ۱/۲۰۱)

(۱۲۵) قوله وبعدهماغسل رجلیه ای بعدالنزع والمضی غسل رجلیه ،یعنی دموزي دایستلو او د مسح دمده دپوره کیدلو په صورت کې که ددي شخص اودس وو نو هغه دي موزه وباسي او صرف پښي دي پریمنځي اولمونځ دي وکړي دباقی اوداسه اعاده پرده لازمه نه ده ولی چې په دي دوو صورتونو کې حدث سابق صرف پښوته سرایت کوي باقي اندامو ته سرایت نه کوي لهذا صرف پښي دي پریمنځي مګرداحکم داحنافو په نزد دی دامام شافعي رحمه الله په نزد که اودس وي که نه وي بیرته به نوی اودس کوي .

(۱۲۶) که دپښي اکثره حصه له موزي څخه ووتله نو داد ټولي پښي وتل ګڼل کیږي لهذا موزه به کاږي او پښي پریمنځل لازم دي ولی چې للاکثرحکم الکل دادامام ابویوسف رحمه الله قول دی دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد که ټوله ایړي یا اکثره ایړی له موزي څخه راووتله نو مسح باطلیږي ولی چې کله محل غسل په موزه کې وي د مسح حکم شته اوکه چې محل غسل له موزي څخه راووځي نو د مسح حکم باقي نه پاتیږي .

(۱۲۷) وَلَوْ مَسَحَ مُقِيمٌ فَسَافَرَ قَبْلَ تَمَامِ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ مَسَحَ ثَلَاثًا (۱۲۸) وَلَوْ أَقَامَ مُسَافِرٌ بَعْدَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ نَزَعَ وَإِلَّا يُتِمُّ يَوْمًا وَلَيْلَةً

**ترجمه** :که مسح وکړه مقیم بیا یې سفرشروع کړ دیوي شپې او ورځي ترپوره کیدو مخته نو تردرو ورځو او شپو پوري دي مسح وکړي ،اوکه مقیم شو مسافرله یوي شپې او ورځي وروسته نو موزي دي وکاږي که نه پوره دي کړي دري ورځي او شپې.

**تشریح** :(۱۲۷) که چاپه حالت داقامت کې مسح شروع کړه بیاله یوي شپې او ورځي پوره کیدلو مخکي ده سفرشروع کړنو په دي صورت کې دده د مسح داقامت مدة د سفر مدة لورته منتقل کیږي نو داشخص به اوس دري ورځي او شپې مسح کوي ولی چې د مسح حکم تروخت پوري متعلق وي او دکوم شی حکم چې تروخت پوري متعلق وي په هغه کې داخیروخت اعتبارکیږي او په اخیروخت کې څرنګه چې داشخص مسافردی لهذا د مسح به د سفر مدة پوره کوي .

(۱۲۸)كه مسافرمقيم شونوكه ده داقامت مدة پوره كړي وي يعني يوه ورځ اوشپه يې مسح كړي وي نوموزي دي وكاږي اوپښې دي پرېمنځي ولې چې دسفررخصت له سفرڅخه بغيرنه پاتېږي اوكه يې ديوي شپې اوورځي مدة نه وي پوره كړي نوهغه دي پوره كړي ولې چې داقامت مدة همدومره ده اوداشخص اوس مقيم دی .

(۱۲۹)وَصَحَّ علی الجرموق(۱۳۰)وَالْجَوْرَبِ الْمُجَلَّدِ وَالْمُنَعَّلِ وَالثَّخِينِ(۱۳۱)لاعلی عِمَامَةٍ وَقَلَنْسُوَةٍ وَبُرْقُعٍ وَقُفَّازَيْنِ

**ترجمه** :اوصحيح ده مسح پرجرموق باندي ،اوپه داسي جواربوچې مجلديامنعل ياسختي وي ،نه په لنګوټه باندي اوپرخولۍ باندي اوپرچادري باندي اوپردستانوباندي .

**تشريح** :جرموق پرموزوبرسيره اغوستل كيږي اودجرموق ساق دموزي ترساق كوچنی وي صاحب القاموس الوحيد دجرموق داسي تعريف كړی دی :هغه كوچنۍ موزه چې پرلويه موزه برسيره په پښو كيږي ،يادچرمي پرموزه دټوكركوچنۍ موزه وګندل شي دحفاظت لپاره په پښو كيږي .

(۱۲۹)قوله وصح علی الجرموق ای وصح المسح علی الجرموق ،يعني زموږپه نزدپه موزوسربيره پرجرموق مسح كول جائزده ،دامام شافعي رحمه الله په نزدجائزنه ده ،دامام شافعي رحمه الله دليل دادی چې موزه دپښوبدل دی اوپه رأيه سره دبدل بدل مقرركول جائز نه دي ترڅوچې په شريعت كې نه وي واردشوی، زموږدليل دحضرت عمر رضي الله عنه دحديث دی ﴿قال رأيت النبي صلی الله عليه وسلم يمسح علی الجرموقين﴾ (يعني ماوليدل چې نبي كريم ﷺ پرجرموقينو مسح وكړه )همدارنګه جرموق په استعمال اوغرض كې دموزي تابع دي په استعمال كې په دي وجه چې جرموق په ولاړيدلو ،كښيناستلو ،تګ راتګ كې دموزي سره يوځای وي اوپه غرض كې په دي وجه چې جرموق دموزي دحفاظت لپاره وي لكه څرنګه چې موزه دپښو دحفاظت لپاره وي نوپرموزه برسيره جرموق داسي شوه لكه دوطاقه موزه اوددوطاقه موزي په برسيرن طاق باندي بالاتفاق مسح كول جائز ده لهذاپرموزوبرسيره پرجرموقينوهم مسح كول جائز دی .

**ف**:مګرشرط دادی چې له موزي پښو كولوورسته له بې اودسي پيښيدلو مخته جرموقين په پښوشوي وي اوكه له بې اودسي پيښيدلو ورسته په پښوشوي وي نوپرداسي جرموقينومسح كول جائزنه دی ،داهم شرط دی چې پرموزوله مسح كولوڅخه مخته په پښوشوي وي كه پرموزوله مسح كولوڅخه وروسته پښوشوي وي نوبياهم پرجرموقينومسح جائزنه ده لمافي الشامية :وان لبسهماالبل ان يمسح علی الخفين اواحدث بعدلبسهماثم لبس الجرموقين لايجوز المسح عليهمااتفاقالانهماحينئذلايكونان تبع للخف (الشامية:۱/۱۹۷)

## پرجرابو ،پګړۍ وغيره باندي دمسح بيان

(۱۳۰)قوله والجورب المجلدای وصح المسح علی الجورب المجلد،يعني پرجورابو (دكتان ياوړيوموزوته جورين ياجراب ويل كيږي ) كه ټينګې اوپنډي وي په دي دول چې اوبه يې دپښولورته نه جذبولي اومنعل (صرف په لاندنۍ حصه يې چرمه ګندل شوي وي)يامجلد(پرټوله جورابه چرمه وهل شوي وي )وي نوپردوئ بالاتفاق مسح كول جائز ده اوكه نه سختي اوپنډي وي اونه منعل اومجلدي وي نوپردوئ بالاتفاق مسح

كول جائز نه ده او كه سختي اوپنډي وي او به يې نه جذبولي مګر منعلي يامجلدي نه وي نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپردوئ مسح جائز نه ده دصاحبينو په نزدجائز ده دصاحبينو دليل دحضرت ابوموسى اشعري رضي الله عنه حديث دى چې ﴿ان النبي ﷺ مسح على الجوربين﴾ (چې نبي كريم ﷺ په خپلو جورابو مسح وكړه )همدارنګه كه جورابې پنډي وي چې بې له تړلو په پنډى باندى تكيه كيږي نو دهغوئ په پښو كولو سره تګ راتګ اوسفركول ممكن دى نو داجورابې دموزو په مشابه شوې لهذا دموزو په څېرپردوئ هم مسح كول جائز دي .دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادى چې جورابې له موزوسره ملحق كول په هغه وخت كې صحيح دي چې جورابې من كل وجه دموزو په معنى وي حال داچې جورابې داسې نه دي ولې چې دموزو په پښو كولو سره مواظبت مشى (هميشه رفتاركول)ممكن دي او په غيرمنعلو جورابو كې مواظبت مشى ممكن نه ده ،هو په منعلو جورابو كې مواظبت مشى ممكن ده په دي وجه پردوئ مسح كول جائز ده دحضرت ابوموسى اشعري رضي الله عنه دحديث محمل هم منعلي جورابې دي.

ف:له امام ابوحنيفه رحمه الله څخه روايت شوى دى چې ده رحمه الله په خپل مرض وفات كې په غيرمنعلو جورابو مسح وكړه او عيادت كونكو ته يې وويل فعلت ماكنت أنهى الناس عنه (يعنى ماهغه كار وكړ له كوم څخه چې ماخلګ منع كول )نوله دي واقعي څخه استدلال شوى دى چې ده رحمه الله دصاحبينو قول ته رجوع كړي ده وعليه الفتوى لمافي الهندية :ويمسح على الجورب المجلدهو الذى وضع الجلد على اعلاه واسفله والمنعل وهو الذى وضع الجلد على اسفله كالنعل للقدم والثخين الذى ليس مجلدا ولامنعلا بشرط ان يستمسك على الساق بلا ربط ولا يرى ماتحته وعليه الفتوى (هنديه:١/٣٢)

ف:دامت دټولو مستندوفقهاء كرامواومجتهدينو عظامو په دي خبره اتفاق دى چې هغه نرمې موزې له كوموڅخه چې اوبه وڅي ياهغه بې له دې چې په يوشى وتړل شي په پنډى نشي تكيه كيدلاى يا په هغوئ كې ميل يادوه ميله مسلسل رفتار نشي كيدلاى پرهغوئ مسح كول جائزنه دي اونه پرچمپلانو مسح كول جائز دي اوڅرنګه چې زموږ په زمانه كومې سوتى اونى نائيلون موزې رواج دي هغه نرمې وي مذكوره صفتونه په دوئ كې نشته په دې وجه پردوئ په هيڅ حال كې هم مسح كول جائزنه دي اوكوم څوک چې داسې كوي نو دامام ابوحنيفه ،امام شافعى ،امام مالک اوامام احمد رحمهم الله تعالى بلكه ديوه مجتهد په مسلک كې هم دده اودس صحيح نه دى ،والله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب (فقهي مقالات:٢/٢٤)

(١٣١)قوله لاعلى عمامة وقلنسوة اى لايصح المسح على عمامة وقلنسوة ،يعنى عمامه (لنګوټه )خولى ، چادرى اوپردستانو باندي مسح كول جائز نه دي ولې چې پرموزودمسح كولو رخصت له نص څخه خلاف قياس ثابت دي په دي وجه پردوئ دبل شى قياسول صحيح نه دي همدارنګه پرموزودمسح كولو رخصت دحرج ددفع كولو لپاره دى حال داچې ددغوشيانو په ايسته كولو كې حرج نشته په دي وجه داشيان پرموزو په قياسولو سره پردوئ مسح جائزه نه ده .

(١٣٢)وَالْمَسْحِ عَلَى الْجَبِيرَةِ وَخِرْقَةِ الْقُرْحَةِ وَنَحْوِ ذَلِكَ كَالْغَسْلِ لِمَا تَحْتَهَا (١٣٣)فَلَا يَتَوَقَّتُ (١٣٤)وَيُجْمَعُ مَعَ الْغَسْلِ (١٣٥)وَيَجُوزُ وَإِنْ شَدَّهَا بِلَا وُضُوءٍ (١٣٦)وَيُمْسَحُ عَلَى كُلِّ الْعِصَابَةِ كَانَ تَحْتَهَا جِرَاحَةٌ أَوْ لَا (١٣٧)فَإِنْ سَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ بَطَلَ وَإِلَّا لَا (١٣٨)وَلَا يَفْتَقِرُ إِلَى النِّيَّةِ فِي مَسْحِ الْخُفِّ وَالرَّأْسِ

**ترجمه**: او مسح پر جبيرة باندي او د زخم پرپټۍ باندي او همداسي پر نورشيانو باندي د پريمنځلو په مثل ده ،نو ددي لپاره د وقت تعين نشته ،او جمع كيږي به د پريمنځلو سره ،او مسح پري جائزده كه څه هم ترل شوي وي بي له او داسه ،او مسح دي كوي پر ټوله پټۍ باندي كه تردي لاندي زخم وي او كه نه وي ،نو كه ولويدله د جوړوالي له امله نو مسح باطله شوه كه نه نو نه ده باطله ،او ضرورت نشته نيت ته د موزي او سر په مسح كې.

**تشريح**: جبيره د مات شوى هډوكى د ترلولرګى ته ويل كيږي ،(۱۳۲)جبيره ،د زخم پټى او نوري پټياني مثلاً د فصد پټى پردي ټولو مسح كول د ماتحت الجبيرة د پريمنځلو په مثل ده لهذا په اوداسه كې د جبيري خلاصول ضروري نه دي ولى چې د جبيري وغيره په خلاصولو كې حرج دى او حرج شرعاً مدفوع دى.

## پرپټى ،پلستر د مسح حكم

**ف**: كه پلستر خلاصول د زخم لپاره تاواني وو نو پلستر خلاصول او د هغه اندام پريمنځل ضروري نه دى بلكه پر پلستر مسح كول كافى ده او هغه پلستر د جبيري په حكم كې ده او كه د پلستر خلاصول تاواني نه وو مګر پلستر تر عام مروج قيمت څخه ډيرګران پيدا كيدو يا خوبي قيمت زيات نه وو مګر د غريبى له امله دا خيستلو قدرت نه وو نو هم مسح جائز ده.

(۱۳۳)د مسح على الجبيرة لپاره وقت مقدر نه ده بلكه د زخم تر جوړيدو پوري پر هغي مسح جائز ده ولى چې د مسح على الجبيري د حد په معين كولو كې كوم حديث نه ده وارد شوى په خلاف د مسح على الخف چې د هغي لپاره وقت مقدر دى همدارنګه په دي وجه هم چې پر جبيره مسح د ماتحت الجبيره د پريمنځلو په څير ده لهذا ددي لپاره كوم وخت مقدر نه دى.

(۱۳۴)او مسح على الجبيرة د پريمنځلو سره جمع كيداى شي يعنى صرف د پټى پرځاى دي مسح وكړي او باقى اندام دي پريمنځي ولى چې مسح على الجبيرة د پريمنځلو بدل نه دى چې جمع بين البدل والمبدل لازمه شي چې ناروا ده حتى كه ديوي پښي پر جبيري باندي مسح وكړه او پر بله پښه يې موزه وه نو پر هغي مسح جائز نه ده ولى چې دا حكماً جمع بين الغسل والمسح ده چې جائز نه ده.

(۱۳۵)پر جبيره مسح جائز ده كه څه هم دبي اودسي يا جنابت په حال كې ترل شوي وي ولى چې دا حد په ورځ د حضرت على ﷺ مروند مات شو نو نبى كريم ﷺ حضرت على ﷺ ته پر جبيره د مسح كولو حكم وركړ، څرنګه چې په دي حديث كې د دي ذكر نشته چې جبيره په اوداسه سره ترل شوي وه كه بغير له طهارته ،لهذا پر مطلق جبيره مسح كول مشروع ده كه په طهارت سره ترل شوي وي او كه بغير له طهارت څخه ،او څرنګه چې جبيره د ضرورت په وخت كې ترل كيږي نو په دي حالت كې د طهارت شرط لګول مفضى الى الحرج ده په دي وجه په بى اودسي سره پرترل شوي جبيره هم مسح كول جائز دى.

(۱۳۶)او د ضرورت له كبله پر ټوله پټى مسح كولى شي كه تر هغي لاندي زخم وي او كه نه وي ولى چې پټى په داسي ډول نه شي ترل كيدلاى چې صرف پر زخم وي ،او دا او دس لپاره په خلاصولو كې حرج دى لهذا چيرته چې زخم نه وي په هغي هم مسح جائز ده مګر دا په هغه وخت كې ده چې جبيره خلاصول او د جبيري

ماتحت پرېمنځل مضروي كه نه نودجبيري خلاصول اودزخم شاوخواپرېمنځل اوپرزخم مسح كول ضروري دي په دي شرط چې دجبيري دخلاصولواوترلوقدرت ولري كه پخپله پردي قادرنه وو اومعاون يې هم نه درلودنوبيادي جبيره نه خلاصوي بلكه مسح دي پري وكړي.

**ف**:له حسن ابن زياد رحمه الله څخه روايت دى چې دټولي پټۍ پرځاى كه په اكثرپټۍ باندي مسح وكړي هم جائزده البته پرنصف ياترنصف پركم باندي مسح كول كافي نه ده همدا صحيح ده لمافي شرح التنوير (ولايشترط)اي مسحها(استيعاب وتكرار في الاصح فيكفي مسح اكثرها) مرفوبه الفتوى (الدر المختار على هامش رد المحتار: ١/٢٠٦)

(۱۳۷)قوله عن برء، عن دلام تعليليه پرمعنى دى اى فان سقطت لاجل برء قوله والالااى لم تسقط عن برء بل لاعن برء لايطل، يعنى كه دزخم دجوړوالى له امله جبيره ولويدله نومسح على الجبيره باطليږي ولى چې دكوم عذرله امله مسح على الجبيره مشروع وه هغه عذرختم شواوكه دزخم له جوړيدلوبغير جبيره ولويدله نومسح نه باطليږي ولى چې دجبيري دلويدلوسره سره دمسح دجواز عذرموجوددى اوتركله چې عذرباقي وي نوپرجبيره مسح كول داسي دي لكه دهغي دلاندي پرېمنځل، په خلاف دموزي چې كه هغه ووتله نومسح باطليږي كمامر.

(۱۳۸)دموزي اوسرپه مسح كې دنيت كولوضرورت نشته يعنى مسح على الخف والرأس كې نيت كول ضروري نه دي ولى چې داداودس جزونه دي نولكه څرنگه چې په كل(يعني اودس )كې نيت شرط نه دى همداشان دموزي اوسرپه مسح كې هم نيت شرط نه دى، دځينو حضراتورأيه داده چې په مسح الخف كې نيت شرط ده ولى چې داد تيمم په څيردپرېمنځلو بدل ده.

**ف**:مگرصحيح داده چې دنيت ضرورت نشته لمافي الهنديه: ولاتشترط النية للمسح على الخفين وهو الصحيح (هنديه: ١/٣٣) كذافي الدر المختار: ١/٢٠٦)

## باب الحيض

داباب دحيض په بيان كې دى

له ماقبل سره يې مناسبت دادى چې مخكې دهغواحداثوذكروو چې كثيرالوقوع وو اوپه دي باب كې قليل الوقوع احداث مذكوردي، په عنوان كې صرف حيض ذكرشوى دى حال داچې په تفصيل كې دنفاس ذكرهم دى نوددي وجه داده چې دحيض وقوع دنفاس په نسبت زياته ده په دي وجه يې په عنوان كې صرف حيض ذكرشوى دى.

(۱۳۹)هودم ينفضه رحم امرأة سليمة عن داء وصغر

**ترجمه**:حيض هغه وينه ده كومه چې غورځوي دداسي ښځي رحم چې سالمه وي له ناروغي اوكم عمري څخه.

**تشريح**:(۱۳۹)حيض لغة دسيلان اوبهيدلوپه معنى دى ويل كيږي حاض الوادى اى سال يعنى شيله وبهيدله ،مصنف رحمه الله دحيض اصطلاحي تعريف په دي ډول كړى دى چې حيض هغه وينه ده كومه چې دداسي ښځي رحم غورځوي كومه چې له ناروغى ،حمل اوورکتوب څخه سالمه وي.

په تعريف کې په لفظ رحم سره احترازدی دپوزي ،استحاضه اودزخمو له وينې څخه ولی چې داوينه له رحم څخه نه ده اوپه امرأة قيدسره احترازدی دسوی اواسمان څکالی له وينې څخه ،اوپه سليمة عن داء قيدسره دنفاس وينه خارجه شوه ولی چې نفاسه ښځه دمريضې په حکم کې ده اودصغرپه قيدسره دنهوکالو څخه دکم عمره انجلۍ درحم له وينې څخه احترازدی ،مګرددې قيدضرورت په دې وجه نشته چې دامرأة په قيدسره نابالغه خارجيږي ولی چې امرأة بالغې ښځې ته ويل کيږي لکه چې رجل بالغ سړی ته ويل کيږي اوحيض ته دحيض ويلو وجه داده چې په خپل وخت کې بهيږي.

(۱۴۰)وأقلّه ثلاثة أيام وأكثره عشرة(۱۴۱)ومانقص أو زاد استحاضة(۱۴۲)وماسوى البياض الخالص حيض

**توجمه**:اودحيض کمه مدة درې ورځې ده اواکثره مده يې لس ورځې ده اوکوم چې تردې کم يازيات شي هغه استحاضه ده اوله خالص سپينوالی څخه ماسوا حيض دی .

**تشريح** :(۱۴۰)يعنی دحيض لږه مده زموږ په نزددرې ورځې اودرې شپې ده ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزددوه پوره ورځې اوددريمې ورځې اکثره حصه دحيض اقله مده ده هغه اکثردکل قائم مقام جوړ کړی دی ،دامام مالک رحمه الله په نزدمطلق وينه حيض ده که څه هم يو ګړی وي اودامام شافعي رحمه الله په نزددحيض اقله مده يوه شپه اوورځ ده ،زموږدليل هغه حديث دی کوم چې ابوامامه باهلی رضي الله عنه اوحضرت ابن عمر رضي الله عنهما روايت کړی دی چې ﴿انه ﷺ قال أقل الحيض للجارية البكر والثيب ثلاثة أيام وأكثره عشرة أيام﴾ (يعنی اقل مده دحيض دپيغلې انجلۍ اوواده شوې ښځې په حق کې درې ورځې اوشپې ده اواکثرمده لس ورځې ده ).

زموږ په نزددحيض اکثره مده لس ورځې ده له لس ورځو څخه زيات استحاضه ده دامام شافعي رحمه الله په نزد پنځلس ورځې ده دامام ابوحنيفه رحمه الله اولنی قول هم همدادی ،دامام مالک رحمه الله په نزددحيض داقل مدې اواکثري مدې لپاره څه حدنشته ،اودامام احمد رحمه الله څخه اظهرروايت دادی چې دحيض اکثره مده اولس ورځې ده ،زموږدليل هغه حديث دی چې په مخکنی مسئله کې تيرشويعنی اکثره (الحيض عشرة ايام)اودشريعت يوشی مقدرکول له دې څخه مانع دی چې له هغه سره بل شی لاحق کړای شي نوکومه وينه چې دشرع له تقدير څخه کمه يازياته وه هغه له حيض سره نشی ملحق کيدای بلکه هغه استحاضه ده .

(۱۴۱)کومه وينه چې له پورته ذکرشوی مدې څخه کمه يازياته وي هغه استحاضه (هغه ښځه چې ددې وينه دمرض له کبله وځي هغې ته مستحاضه ويل کيږي )ده ولی چې پورته بيان شوچې له دريو ورځو څخه کم اوترلسو ورځو زيات حيض نه دی لهذا تردريو ورځو کم اوترلسو ورځو زيات استحاضه ده .

(۱۴۲)حائضه ښځې ته چې دحيض په ورځو کې په کوم رنګ هم وينه راشي هغه حيض ګڼل کيږي عامه ده که يې سور رنګ وو که زيړ ،که خاکې،که تور،که زرغون اوکه شين رنګ ووترڅوچې خالص رطوبت راشي ﴿لحديث علقمة بن ابی علقمة عن امه مولاة عائشة رضي الله عنها ام المؤمنين انها قالت لما روي أن النساء كن يبعثن إلى عائشة رضي الله عنها بالدرجة فيها الكرسف فيه الصفرة من دم الحيض فتقول لاتعجلن حتى ترين القصة البيضاء﴾ (يعنی علقمه بن ابی علقمة له خپلی مورچې دحضرت عائشې رضي الله عنها ازادکړل شوې مينځه وه څخه روايت کوي چې ښځوبه يوه ډبه کې دحيض په زيړرنګو وينولړل شوی کرسف (هغه توکرچې ښځې يې دحيض په ورځو کې استعمالوي )حضرت ام

المؤمنين عائشه ﷺ ته راليږي اوپوښتنه به يې کوله چې لمونځ وکړي؟ نوحضرت عائشه ﷺ دوئ ته فرمايل چې تلوارمه کوی تردې چې خالص سپينوالی ونه وينئ)يعنی له حيض څخه پاکی شی ،ښکاره خبره ده چې حضرت عائشې ﷺ چې څه فرمايلي دي هغه يې له نبی کريم ﷺ څخه اوريدلی دي او فرمايلي دي.

(۱۴۴)يمنع صلاةً وصوماً وتقضيه دونها (۱۴۵) ودخول مسجد (۱۴۶) والطواف (۱۴۷) وقربان ماتحت الإزار (۱۴۸) وقراءة القرآن ومسه إلا بغلافه (۱۴۹) ومنع الحدث المس (۱۵۰) ومنعهما الجنابة والنفاس

**ترجمه**:حيض مانع دی لمانځه اوروژي لره او ښځه به قضاء اوري دروژي نه دلمانځه ،او مانع دی له دخول مسجد څخه ، اوله طواف څخه ،اوله نامه څخه ترزنګونوپوري له نزديکت څخه ،اودقران کريم له ويلو څخه اودقران کريم له مس کولو څخه مګرله پوښ سره ،اومانع ده بي اودسي قران کريم ته له لاس وروړلو څخه ،اوله دواړو څخه مانع دی جنابت اونفاس.

**تشريح** :(۱۴۴)قوله وتقضيه دونهاای تقض الصوم دون الصلوة ،يعنی حيض له لمانځه اوروژه نيولو څخه مانع دی حائضه ښځه دحيض په دوران کې نه لمونځ کولی شي اونه روژه نيولی شي ولی چې دحيض په دوران کې دلمانځه اوروژي نيولوپه حرمت باندې دامت اجماع ده ،بيادحيض له ختميدووروسته به دروژي قضاءاوري مګردلمانځه قضاءنشته ولی چې دلمانځه په قضاکې حرج دی په دې وجه چې حيض عموماً هره مياشت راځي اوپه يوه ورځ کې پنځه لمونځونه فرض دي په دې دول سره دحيض په لسوورځوکې لمونځونه پنځوس جوړيږي اوپه مياشت کې دپنځوسولمونځونوپه قضاءاوړلو کې عظيم حرج دی اوروژه ځکه چې په کال کې يوه مياشت ده په دې وجه دهغې په قضاکې څه حرج نشته .

**ف**:دحائضي ښځي لپاره دامستحب دی چې دلمانځه پروخت اودس وکړي اوپه مصله کښيني اوتر دومره وخته پوري په ذکراواذکارومشغوله شي په څومره وخت کې چې دا ښځه لمونځ کولی شي لمافی الهنديه:ويستحب للحائض اذادخل وقت الصلوة ان تتوضاوتجلس عندمسجدبيتهاتسبح وتهلل قدرمايمكنهااداء الصلوة لوكانت طاهرا(هنديه:۱/۳۸)

(۱۴۵)قوله ودخول مسجدوالطواف الخ ای ويمنع الحيض ايضادخول مسجدالخ،يعنی حيض مسجدته له ننوتلو څخه مانع دی يعنی حائضي ښځي لره مسجدته ننوتل جائزنه دي همدادجنبی حکم هم دی ﴿لحديث عائشة ﷺ ان النبی ﷺ قال وجهوا هذه البيوت عن المسجد فإني لا أحل المسجد لحائض ولا جنب﴾(يعنی نبی کريم ﷺ وفرمايل چې ددې کورنودروازي له مسجد څخه وګرځوئ ولی چې زه مسجد دحائضي اوجنبی لپاره حلال نه ګرځوم ).

(۱۴۶)قوله والطواف ای يمنع الحيض الطواف بالبيت ،يعنی حائضه ښځه دې دبيت الله طواف نه کوي ولی چې نبی کريم ﷺ حضرت عائشې ﷺ ته دحيض راتلوله امله وفرمايل ﴿لاتطوفي بالبيت﴾ (دبيت الله طواف مه کوه ) همدارازطواف ځکه چې په مسجدحرام کې کيږي او حائضي ښځي لره مسجدته ننوتل ممنوع دي په دې وجه طواف کول هم ممنوع دي .

(۱۴۷)قوله وقربان ماتحت الازار ای یمنع الحیض قربان ماتحت الازار ،حیض دحائضې ښځې سره له نزدیکت څخه مانع دی یعنی له حائضې ښځې سره دخاوند جماع کول حرامه ده لقوله تعالی ﴿وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ﴾ (نزدیکت مه کوئ له حیض والاوو سره ترڅوچې دوئ پاکې شي )له قربت څخه مراد وطی ده .

ف :څرنګه چې له حائضې ښځې سره وطی کول حرامه ده لهذا که کوم شخص له حائضې ښځې سره وطی کول حلال وګڼي نودځینو علماوپه نزد داسې شخص کافرکیږي اګرچه ترجیح ددې خلاف ته ورکړل شوې ده اوکه دحرمت عقیده وه اوله ښځې سره یې وطی وکړه نوفاسق اودګناه کبیره مرتکب ګرځي لهذاپرده توبه واجب ده لمافی الدرالمختار(ویکفرمستحله) کماجزم به غیرواحدوکذامستحل وطء الدبرعندالجمهورمجتبی (وقیل لا)یکفرفی المسئلتین وهوالصحیح خلاصة(وعلیه المعول)لانه حرام لغیره(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲۱۸/۱)

ف :له حائضې ښځې سره دجماع اومباشرت دري صورتونه دي (۱)له نامه څخه لوړاوله زنګنوڅخه کښته له بدن څخه فائده واخیستل شي ،داجائزده (۲)دنامه اوزنګنوترمنځ حصې باندې بغیرله حائله استمتاع اوتلذذحاصل کړای شي ،داناجائزده (۳)دنامه اوزنګنوترمنځ پرحصه باندې استمتاع حاصل کړای شي په داسې حال کې چې جامه یاغیره حائل وي ،داجائزده لمافی الدرالمختار:ویمنع ........وقربان ماتحت ازاریعنی مابین سرة ورکبة ولوبلاشهوة وحل ماعداه مطلقا.قال ابن عابدین :فیجوزالاستمتاع بالسرة ومافوقهاوالرکبة وماتحتهاولو بلاحائل وکذابمابینهما بحائل ولولتلطخ دماولایکره طبخهاولااستعمال مامسته من عجین اوماء اونحوهما (الدرالمختارمع الشامیة ۲۱۳/۱:)

(۱۴۸)قوله وقراة القران ای یمنع الحیض قراة القران ،حیض دقران له قرأة څخه مانع ده یعنی حائضې ښځې ته دقران کریم ویل جائز نه دي﴿لقوله ﷺ لَا تَقْرَأُ الْحَائِضُ وَلَا الْجُنُبُ شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ﴾(یعنی حائضه اوجنب دي له قران څخه هیڅ هم نه وایي )، داحدیث باطلاقه یوه ایت اوتریوه ایت کم دواړوته شامل دی په داسې حال کې چې امام طحاوی رحمه الله له یوه ایت څخه دلږویل جائزبولي مګرقول اول اصح دی ،همداشان حائضې ښځې ته بغیرله جامې دقران کریم مس کول هم جائزنه دي ﴿لقوله ﷺ لایمس القران الاطاهر﴾ (چې نه دمس کوي قران مګرپاک)او﴿لحدیث حکیم بن حزام رضي الله عنه قال :لمابعثني رسول الله ﷺ الی الیمن قال لاتمس القران الاوانت طاهر﴾(چې مه مس کوه قرآن مګرداچې ته پاک یې)

ف :که حائضه ښځه له یوه ایت څخه کم دقرأة په نیت نه بلکه دددعاء اوشکرپه نیت سره وایي نوداجائزدی لکه دخوراک په وخت کې بسم الله یاالحمدلله ویل ولی چې په دي وخت کې داذکردی اوحائضه اوجنب له ذکرڅخه نه دي منع شوي البته داسې کوم سورة چې په هغه کې ددعاء معنی نه وي لکه سورة ابولهب نوپه دي کې ددعاء قصدوغیره مؤثرنه دی لمافی الشامیة (قوله بقصده )فلوقرات الفاتحة علی وجه الدعاء اوشیئامن الایات التی فیهامعنی الدعاء ولم ترد القرأة لاباس به کماقدمناه عن العیون لابی اللیث وان مفهومه ان مالیس فیه معنی الدعاء کسورة أبی لهب لایؤثرفیه قصدغیرالقرانیة(ردالمحتار:۲۱۴/۱)

## معلمې(ښوونکې) حائضې لره دتلاوت حکم

ف:کو چنيانو ته دقرآن کريم تعليم ورکونکې معلمه که دحيض په حالت کې وه نو هغه دتعليم په نيت سره ايت په کلمه کلمه کولو سره ويلی شي لکه الحمد.....ه .....رب العلمين .لمافي الهندية :واذاحاضت المعلمة فينبغي لهاان تعلم الصبيان کلمة کلمة وتقطع بين الکلمتين ولايکره لها التهجي بالقرآن(هنديه:۳۸/۱)

(۱۴۹)دمحدث (بې اودسه )لپاره دقرآن کريم بغيرله جامو مس کول جائزنه دی له جامو سره مس کول جائزدي په دې شرط چې جامه له مصحف څخه جلاوي که متصله وه بيا جائزنه دی ،همداشان درهم ،لرګی وغيره چې پرهغه دقرآن کريم ايت ليکل شوی وي نودهغه مس کول هم جائز نه دي﴿لقوله ﷺ لايمس القرآن الاطاهر ﴾(چې نه دي مس کوي قرآن مګرپاک) مګرله هميانی سره دهغه مس کول جائز دی يعنی که داسي درهم په هميانی کې وو نودهغې مس کول جائزدی.

(۱۵۰)قوله ومنعهما الجنابة والنفاس ای ومنع المس والقرأة الجنابة والنفاس ،يعنی دجنابت حال اودنفاس حال دقرآن کريم له مس کولو اوويلو دواړو څخه مانع دی يعنی جنب اونفاسه ښځه نه قرآن ويلی شي اونه لاس وروړلی شي ولی چې حدث اوجنابت ددوئ په لاسوکې هم حلول کړی دی لهذادواړوله قرآن مجيدته لاس وروړل منع دي اوڅرنګه چې جنابت اونفاس په خوله کې هم حلول کړی دی لهذاجنبی اونفاسه ښځه قرآن مجيدويلی هم نه شي.

ف:دقرآني ايتونوکيسټ ته بې له اودسه په لاس وروړلوکې څه حرج نشته ولی چې په کيسټ کې قرآنی ايتونه ليکل شوي نه دي زيات ترزيات په هغه کې دقران کريم اوازدی اودقرانی اوازله جسم سره دمس کيدلوپاره طهارت ضروري نه دی که نونو دجنبی لپاره به دقرآن کريم اوريدل جائزنه وای ،ليکن دقرآن کريم داحترام تقاضاداده چې دې کيستې ته هم بې اودسه لاس ورنه وړل شي .

ف:لکه څرنګه چې جنب ،حائضې اونفاسې ښځې ته دقرآن کريم تلاوت صحيح نه دی همداشان ددوئ لپاره دقرآن کريم ليکل هم صحيح نه ده که څه هم دټيپ رائټر اوکمپوټرپه ذريعه سره وي البته بې اودسه شخص په دې جديدو ذريعوسره دقرآن کريم کتابت کولی شي په دې شرط چې دقران له ايتونوسره يې لاس ونه لګيږي .(فتاوی حقانيه:۵۶۶/۲)

(۱۵۱)وتوطأبلاغسل بتصرم لأكثره(۱۵۲)ولأقله لاحتى تغتسل(۱۵۳)اويمضي عليهاأدنى وقت صلاة

**ترجمه** :اووطی کيدلای شي بې له غسله داکثرمدې په تيريدلوسره ،اودلږې مدې په تيريدلوسره نشي کيدلای ترڅوچې غسل وکړي ،ياتيرشي پرهغې باندې ادنی وخت دلمانځه .

**تشريح** :(۱۵۱)که داکثرمدې دحيض يعنی لس ورځوپه تيريدلوسره وينه منقطع شوه نوله غسل کولوڅخه مخکې له دې حائضې ښځې سره وطی کول جائز دی ولی چې حيض له لسو ورځوڅخه زيات نشي کيدلای البته له غسل کولوڅخه مخکې وطی نه کول مستحب دی .

ف:تصرم دانقطاع په معنی دی يعنی داکثرمدې په تيريدلوسره چې دکومې ښځې وينه منقطع شي نوله هغې سره وطی کول جائزده مګرپه دې عبارت داعتراض شوی دی چې داکثرمدې په تيريدلوسره مطلقاوطی جائزده که وينه منقطع شي اوکه ياولی چې له اکثرمدې وروسته راتلونکې وينه حيض نه ده بلکه

استحاضه ده کوم چې دوطی مانع نه ده ؟هوداویل کیدای شي چې مصنف رحمه الله داد عام عادت مطابق ویلي دي ځکه چې داشاذاونادرپیښیږي چې له اکثرمدي تیریدلوسره وینه منقطع نه شي .

ف :دلاکثره لام دبعدپه معنی دی کمافی قوله تعالی﴿ أَقِمِ الصَّلَاةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ ﴾ ای بعددلوک الشمس وقال ﷺ ﴿صوموالرؤیته ای بعدرؤیته﴾.

(۱۵۲)قوله ولاقله لاحتی تغتسل ای وبانقطاع دمهالاقل الحیض لاتوطاحتی تغتسل،یعنی که دحائضې ښځې وینه په کمه مده دحیض یعنی دریوورځومنقطع شوه اوددي ښځې عادت هم همداوو چې په دریوورځوددي وینه بندیدله نوله دي سره وطی جائزه نه ده ترڅوچې غسل وکړي ولی چې وینه کله جاری وي کله منقطعه نودانقطاع جهت ته دترجیح ورکولولپاره غسل کول ضروري دی .

(۱۵۳)قوله اویمضی علیهاادنی وقت صلوة ای وبانقطاع دمهالاقل الحیض لاتوطاحتی یمضی علیهاادنی وقت صلوة ،یعنی که ښځې دوینه له انقطاع وروسته غسل خونه کړالبته پردي دکامل لمانځه (له کامل لمانځه څخه مرادپنځه وخته لمونځ دی په دي سره احترازدی دځابنت اواخترله لمانځه څخه حتی که کومه ښځه داخترد لمانځه پروخت پاکه شي نودي لره دماپښین دلمانځه دوخت تیریدلوپوري انتظارکول ضروري دی)ادنی وخت تیرشي یعنی دومره وخت تیرشي چې داپه دي وخت کې په تیزی اوتلوارسره غسل کولی شی اوجامی اغوستلی شي اوتحریمه کولی شي نوهم له دي سره وطی کول جائزده ولی چې لمونځ ددي پرذمه قرض شولهذاداښځه پاکه ګڼل کیږي ځکه چې کله شریعت پردي دلمانځه دواجبید وحکم وکړاوحال داچې دحیض په حالت کې لمونځ صحیح نه دی نودادلیل دی چې شریعت ددي دپاکوالی حکم کړی دی.

## دطهرمتخلل بیان

(۱۵۴)وَالطُّهْرُ الْمُتَخَلِّلُ بين الدَّمَيْنِ فِي الْمُدَّةِ حَيْضٌ وَنِفَاسٌ (۱۵۵)وَأَقَلُّ الطُّهْرِ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا وَلَا حَدَّ لِأَكْثَرِهِ (۱۵۶)إِلَّا عِنْدَ نَصْبِ الْعَادَةِ فِي زَمَانِ الِاسْتِمْرَارِ .

**ترجمه**:اوپاکی چې ددوو وینوپه منځ کې راشي دحیض اونفاس په مده کې حیض اونفاس دی ، اودپاکی لږترلږه مده پنځلس ورځې ده اوهیڅ حدنشته دپاکی اکثري مدي لره ،مګردعادة دمقررولی په وخت کې دوینې داستمرارپه زمانه کې .

**تشریح** :(۱۵۴)طهرحیض دوینودانقطاع زمانې ته ویل کیږي نوکه طهرحیض یانفاس په مده کې ددووینوپه منځ کې واقع شومثلایوه ورځ یې وینې ولیدلی بیااته ورځې پاکې وه بیایوه ورځ وینه راغله یادنفاس په څینوورځوکې وینه راغله بیابنده شوه بیاراغله نوداپه منځ کې پاکوالی مسلسله وینه ګڼل کیږي ،داله امام ابوحنیفه رحمه الله څخه دطهرمتخلل په باره کې له مروی روایاتوڅخه یوروایت دی وجه یې داده چې دوینودحیض ټوله مده نیول بالاجماع شرط نه ده نوددي اول اواخیرشمارل کیږي لکه دزکوة په باب کې چې دنصاب حکم دی .

ف :دامام محمد رحمه الله مذهب دادی چې که طهرمتخلل تردریوورځوکم نوپه هیڅ صورت کې هم فاصل نه ګڼل کیږي اوکه دری ورځې وو نوکه ددواړوطرفونوله وینې سره برابریاکم وو نوهم فاصل ګڼل کیږي اوکه

ددوارو طرفونو له وينې څخه زيات وو نو فاصل ګڼل کيږي ،دامام ابويوسف رحمه الله څخه روايت دی چې ددوارو وينو ترمنځ که طهر ترپنځلس ورځې کم وو نو دا طهر فاصل نه ګڼل کيږي بلکه د طهر په ورځو کې به هم حيض ګڼل کيږي ولی چې دا طهر فاسد دی لهذا به دجاری وينې په مرتبه کې وي ددې قول اختيارول ډیر اسانه دي ډيرو متأخرينو پردې قول فتوی ورکړې ده ولی چې دا د مفتی او مستفتی دواړو لپاره اسانه دی او وا له امام ابوحنيفه رحمه الله څخه يو روايت هم دی او ويل شوي دي چې دامام صاحب رحمه الله اخري قول هم همدا دی لمافی فتح القدير: وروی ابو يوسف عنه وبه اخذان الطهر اذا کان اقل من خمسة عشر لايفصل وقيل هو آخر اقوال ابی حنيفة وعليه الفتوی(فتح القدير:۱/۱۵۳)

(۱۵۵)ددو مستقلو حيضو په منځ کې د طهر فاصل کمه مده پنځلس ورځې او پنځلس شپې دي ولی چې د طهر کمه مده داقامت دمدې په شان ده لهذا لکه څرنګه چې داقامت اقله مده پنځلس ورځې ده همدا شان به د طهر اقله مده هم پنځلس ورځې وي ولی چې طهر او اقامت هريو په لمانځه او روژې کې مؤثر دی په همدې وجه د سفر په اقله مده په قياسولو سره د حيض کمه مده درې ورځې مقرره شوې ده .

ف:داچې پورته بيان شوه دا ددو حيضو په منځ کې د طهر اقل مده وه پاته شوه ددوو نفاسو په منځ کې اقل مده طهر نو هغه شپږ مياشتې ده لهذا يوه ماشوم له پيدا کيدو څخه وروسته که تر شپږو مياشتو په کم وخت کې بل ماشوم پيدا شو نو دا دواړه به توأمين (غبرګولي) ګڼل کيږي .

(۱۵۶)د طهر د اکثر مده لپاره کوم حدنه ده مقرر شوی په دې وجه چې کله دا سې وي چې ښځې ته په ټول ژوندکې حيض نه ورځې البته يو صورت مستثنی ده هغه داچې کله کومه ښځه مستحاضه شي نو د ضرورت له امله به ددې لپاره د طهر مده مقرريږي .

ف:دا درې صورته لري (۱)چې ښځه له بلوغ سره مستحاضه شي نو ددې حکم دا دی چې په هره مياشت کې لس ورځې دحيض دی او لس ورځې د طهر(۲)او که له بلوغ څخه وروسته څه وخت هغه روغه وه او بيا د استحاضې په مرض اخته شوه نو که ددې د حيض عادت معلوم وو مثلاً مخکنی عادت يې داوو چې په هره مياشت کې به دې ته لس ورځې وينه ورتله نو اوس به په مياشت کې ددې د عادت اته ورځې حيض ګڼل کيږي او پاتې دوه ويشت ورځې به طهر وي (۳)او که ددې مخکنی عادت وو مګر د هغه ابتداء او انتهاء له دې څخه هيره وه نو دا به تحری کوي د کومو ورځو په باره کې چې ددې غالب ګمان داوو چې دا د حيض ورځې دي نو هغه به د حيض ورځې ګڼل کيږي او د کومو ورځو په باره کې ددې غالب ګمان داوو چې دا د طهر ورځې دي نو هغه به د طهر ورځې ګڼل کيږي ولی چې غالب ګمان هم له ادله شرعيه و څخه ده .(د زيات تفصيل لپاره وګورئ شامی :۱/۲۱۰)

## داستحاضه بيان

(۱۵۷)ودم الاستحاضة کرعاف دائم لايمنع صوما ولاصلوة ولا وطيا(۱۵۸)وَلَوْزَادَالدَّمُ عَلَى أَكْثَرِ الْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ فَمَازَادَعَلَى عَادَتِهَا اسْتِحَاضَةٌ

**ترجمه**: او د استحاضه وينې د پوزې د دائمي وينو په شان دي مانع نه دي روژې او لمانځه او نزديکت لره. او که زياتې شوې وينې د حيض او نفاس له اکثري مدې څخه نو کومې چې د دې له عادت څخه زياتي دي هغه استحاضه دي.

**تشريح**: (۱۵۷) د استحاضې وينه د پوزې د هميشنۍ وينې په حکم کې دی نو د پوزې د وينو په شان د استحاضې وينه هم روژې، لمانځه او وطي لره مانع نه ده ولې چې نبی کريم ﷺ مستحاضې ښځې ته وفرمايل ﴿توضئ وصلي وان قطر الدم على الحصير﴾ (ته د هر لمانځه لپاره اودس کوه او لمونځ کوه که څه هم وينه پرېزی باندي څڅيږي) نو کله چې له دي حديث څخه د لمانځه حکم معلوم شو چې د ده لپاره طهارت لازم نه دی نو د روژې او وطی حکم هم معلوم شو ولې چې لمونځ د دوئ په نسبت طهارت ته احوج دی کله چې د ده لپاره په دې صورت کې طهارت نه دلازم نو د روژې او وطی لپاره به په طريقه اولی سره لازم نه وي.

(۱۵۸) که د کومې ښځې عادت داوو چې په هره مياشت کې دي ته پنځه ورځې حيض ورتومګر داځل داسې وشوو چې د دې حيض له پنځوورځوڅخه زيات شو او تر اکثري مدې د حيض هم واوښت نو دعادت له ورځو څخه زياتې چې څومره ورځې دي هغه ټولې د استحاضې ورځې شمارل کيږي ولی چې له عادت څخه زياتې ورځې د هغو ورځو مجانسې دي کومې چې له لسو ورځو څخه زياتې دي لهذا په حکم کې به هم په هغوئ پسې ملحقې وي او که وينه له عادت څخه زياتې شوې او په لسوورځو و دريدلې نو دا ټولې حيض شمار کيږي ولی چې اوس به داسې ګڼل کيږي چې د دې عادت بدل شو همدا حکم د نفاس هم دی چې که د عادت له ورځو څخه زياتې شوې او د نفاس تر اکثر مدې (يعنی څلويښتو ورځو) څخه هم زياتې شوې نو د عادت له ورځو څخه چې زياتې څومره ورځې دي هغه ټولې د استحاضه وينې ګڼل کيږي او که په څلويښتو ورځو ودريدلې نو دا ټولې د نفاس ورځې ګڼل کيږي لما قلنا.

[ (۱۵۹) وَلَوْ مُبْتَدَأَةً فَحَيْضُهَا عَشَرٌ وَنِفَاسُهَا أَرْبَعُونَ ]

**ترجمه**: او که ښځه له اول ځل سره استحاضه شوه نو د دې حيض به (هره مياشت) لس ورځې او نفاس به څلويښت ورځې وي.

**تشريح**: (۱۵۹) قوله ولو مبتداة اى ولو كانت المرأة مبتداة الخ، يعنی که کومه ښځه له بلوغ سره مستحاضه شوه يعنی د هغې د بلوغ حيض له لسو ورځو څخه زيات شو او مستمر شو نو د دې ښځې حيض په هره مياشت کې (له هغې ورځې چې دي وينه په کې ليدلې) لس ورځې وي نورې شل ورځې به د استحاضه وي ولی چې که په لسو ورځو وينه دريدلی وای نو دا ټولې به حيض وي مګر کله چې له لسو ورځو واوښتې نو په دې کې شبه پيدا شوه چې له دريوورځو څخه زيات تر لسو ورځوپورې حيض دی که نه دی نو مخکنی يقين په دې شک سره نه زائله کيږي کوم چې اوس پيدا شو، همدا شان که ښځه پر اولنی ولادت باندې مستحاضه شوه نو د دې نفاس به څلويښت ورځې وي ولی چې که په څلويښتو ورځو وينه دريدلی وای نو دا به ټولې نفاس وي مګر کله چې له څلويښتو ورځو زياتې شوې نو تر څلويښتو ورځو په کمو کې شبه پيدا شوه چې نفاس دی که نه دی نو مخکنی د څلويښتو ورځو يقين په دې شک سره نه زائليږي کوم چې اوس پيدا شو.

(۱۶۰) وتتوضأ المستحاضة ومن به سلس البول او استطلاق بطن او انفلات ريح او رعاف دائم او جرح لا يرقأ لوقت كل فرض ويصلون به فرضا ونفلا (۱۶۱) ويبطل بخروجه فقط (۱۶۲) وهذا اذا لم يمض عليه وقت فرض الا وذلك الحدث يوجد فيه

**ترجمه** :او اودس به كوي مستحاضه او دچاچې سلس البول ناجوړي وي ياچې دچانس جاري وي يادهوا دخروج ناجوړي وي ياېې هميشه پوزه وينه كوي چې نه بنديږي هر فرض لمانځه وخت ته اولمونځ دې كوي په همدې اودا سه سره فرض او نفل، او باطليږي صرف دوخت په وتلو سره ،او دا هغه وخت دی چې نه تيريږي دلمانځه وخت مگر دا بې اودسې پيښيږي په هغه كې .

**تشريح** :(۱۶۰)مستحاضه ښځه او دچاچې دسلس البول(دچاچې بولې جاري وي)ناروغې وي يادچانس ايله وي ياېې هوا خارجيږي ياېې هميشه له پوزې وينه څې يا داسې زخم وي چې وينه يې نه دريږي نوددې تولو لپاره حكم دادی چې دهر فرض لمانځه دوخت لپاره به اودس كوي بيا پردغه اودا سه په وخت كې دننه چې څومره يې خوښه وي لمونځ دې كوي هغه لمونځونه كه فرض وي كه واجب كه نفل اوكه اداء وي اوكه قضاوي كله چې وخت ووځي نو ددې معذورو اودس باطليږي لهذا كه يې اوس بل فرض لمونځ كوی نو دهغه لپاره نوی اودس كول ضروري دی لقوله ﷺ «المستحاضة تتوضأ لوقت كل صلوة» (يعنی مستحاضه دې دهر لمانځه دوخت لپاره اودس كوې).

**ف** :مذكوره بالامسلک داحنافو دی دامام شافعي رحمه الله په نزد فرض يو او نفلو نو څومره چې يې خوښه وي اداء كولی شي ولی چې نبی كريم ﷺ فاطمة بنت ابی حبيش رضي الله عنها ته وفرمايل «توضئي لكل صلوة» (ته اودس كوه هر لمانځه ته)،احناف ځواب وركوي چې لام دوقت په معنی كې هم استعماليږي لهذا دا احتمال شته چې لكل صلوة په معنی دلوقت كل صلوة وي ،په دې دول سره دا راويت محتمل دی حال داچې داحنافو روايت محكم دی ،دامام مالک رحمه الله په نزد فقط يو فرض او يو نفل اداء كولی شي .

## دمعذور داحكامو بيان

**ف**:دمعذوردجامو په باره كې اختلاف دی دځينو حضراتو رأيه داده چې معذور به جامې هرلمانځه ته پريمينځي او ځينې وايې چې دجامې پريمنځل لازم نه دي .مگرمفتی به قول دادی چې كه هغه په دې دول معذوروو چې له جامو پريمنځلو څخه وروسته له لمانځه څخه ترفارغيدلو وړاندي دده جامې بيرته مرداريدلی نو دجامو پريمنځل لازم نه دي كه نه نو لازم دي .

(۱۶۱)دفقهاؤ په دې كې اختلاف دی چې دصاحب عذر اودس دوخت په وتلوسره باطليږي اوكه دبل وخت په شروع كيدلو سره، دطرفينو قول دادی چې دوخت په وتلو باطليږي دوخت په داخليدلو نه باطليږي ولی چې شارع دكل وخت په لمانځه دمشغولولو اجازه كړي ده نو له وخت څخه وړاندي دطهارت له حاصلولو بغير دكل وخت په لمانځه سره مشغولول ممكن نه دي په دې وجه له وخت څخه وړاندي اودس جائزدی اوله وخت څخه وړاندي دا اودس جوازدې خبرې ته مستلزم دی چې دخول وخت ناقض نه دی ،اوخروج وخت ځكه چې دزوال حاجت دليل دی لهذا په خروج وخت سره اودس ماتيږي، امام ابويوسف

﷬ فرمايي چې دوخت په وتلو او داخليدلو هر يوه سره باطليږي ولې چې دطهارت حاجت په وخت پورې منحصر دی لهذا نه له وخت څخه وړاندې او نه وروسته معتبر دی . دامام زفر ﷬ په نزد د بل وخت په شروع كيدلو سره باطليږي، ددې اختلاف ثمره په دې مسئله كې ښكاريږي مثلاً كوم صاحب عذر د سهار لمونځ په اوداسه اداء كړنو ائمه ثلاثه په نزد په دې اوداسه دڅاښت لمونځ كولى نه شي كولى پر همدې فتوى ده ولې چې دسهار دوخت په وتلو سره دده اودس باطليږي ،دامام زفر ﷬ په نزد دڅاښت لمونځ كولى شي ولې چې دده په نزد په بل فرضي وخت باندې اودس باطليږي كوم چې تر اوسه نه دی شروع شوی .

ف:همداشان كه چا دڅاښت دلمانځه لپاره اوس وكړنو دطرفينو په نزد په دې اوداسه دماپښين لمونځ كولى شي اودامام زفر ﷬ په نزدې نه شي كولى ،همدا دامام ابويوسف ﷬ قول دی ،دطرفينو قول صحيح دی لمافي شرح التنوير:والفادانه لوتوضاءبعدالطلوع ولولعيداوضحى لم يبطل الابخروج وقت الظهر(الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:١/٢٢٣)

(١٦٢)دمعذورينو لپاره داحكم هغه وخت دی چې كله پردوئ دكوم فرض لمانځه وخت داسې نه تيريږي چې په كوم حدث دوئ مبتلا دي هغه حدث په دې وخت كې موجود نه شي دا دانقطاع عذر لپاره شرط دی .پاتې شو دثبوت عذر لپاره شرط دا دی چې په ټول وخت كې ده ته دومره موقع په لاس ورنه شي چې په هغه كې دی اودس وكړي اولمونځ اداء كړي اوده ته داحدث پيښ نه شي ولې چې په همداسې عذر سره ضرورت متحقق كيږي .

ف:نوكه چا ته په وسط وخت كې عذر پيښ شو مثلاً له زخم څخه وينه بهيدل شروع شوا وده ددې وخت لمونځ نه وي اداء كړی نو هغه دې داخري وخت انتظار وكړي نوكه په اخيري وخت كې هم داعذر منقطع نه شونو دی له خروج وخت څخه وړاندې اودس وكړي اولمونځ دې اداء كړي بياچې كله بل وخت داخل شي نوكه دده داعذر منقطع شو بيرته نه راوګرځيدونو داكس دې اودس وكړي اودتير شوي وخت لمونځ (كوم چې ده له عذر سره اداء كړی وو )دې اعاده كړي ولې چې كامل وخت دده دعذر دنه پاتې كيدلو په وجه سره معلومه شوه چې ده بلاعذر د معذورو خلكو په څير لمونځ اداء كړی دی لمافي الشامية:ولوعرض بعددخول وقت فرض انتظر الى آخره فان لم ينقطع يتوضأ ويصلي ثم ان انقطع في اثناء الوقت الثاني يعيدتلك الصلوة وان استوعب الوقت الثاني لايعيد(الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:١/٢٢٣)

ف:حتى الامكان دعذر دفع كول ياكمول واجب دي مثلاً كه كوم كس په ناسته لمونځ اداء كوي نو دده معذوري منقطع كيږي اوكه يې په ولاړه اداء كوي نو دده عذري جاري پاتې كيږي نو پر داسې كس واجب دی چې په ناسته لمونځ اداء كړي لمافي شرح التنوير:يجب رد عذره اوتقليله بقدر قدرته ولوبصلوته موميا(ردالمحتار:٣/٢٢٥)

## په هسپتال كې دجامو دطهارت بيان

ف:په هسپتال كې دبدن اوجامې طهارت كله خو په يقيني ډول نه وي اوكه مشتبه وي ،كه جامې بدلې كړي بيرته نجسې كيږي يانجسې كيږي خو نه البته دجامو په بدلولو كې ده ته مشقت وي نو په داسې صورت كې

ددي قسم مرض مريض لره په همدي حالت كې لمونځ اداء كول په كار دي لمافي الشامية :مريض تحته ثياب نجسة وكلما بسط شيئا تنجس من ساعته صلى على حاله وكذا لو لم يتنجس الثاني الا انه يزداد مرضه له ان يصلي فيه (ردالمحتار: ۱/۲۴۴)

## دنفاس بيان

(۱۶۳)وَالنِّفَاسُ دَمٌ يَعْقُبُ الْوَلَدَ(۱۶۴)وَدَمُ الْحَامِلِ اسْتِحَاضَةٌ(۱۶۵)وَالسِّقْطُ إِنْ ظَهَرَ بَعْضُ خَلْقِهِ وَلَدٌ(۱۶۶)وَلَا حَدَّ لِأَقَلِّهِ(۱۶۷)وَأَكْثَرُهُ أَرْبَعُونَ يَوْمًا وَالزَّائِدُ اسْتِحَاضَةٌ

**ترجمه** :اونفاس هغه وينه ده كومه چې دماشوم له زيږيدلو وروسته راځي ،اودحاملې وينه استحاضه ده ،اودناتمام ماشوم كه ښكاره شوي وي بعض اجزاء نودكامل ماشوم په حكم كې دى ،اوهيڅ حدنشته دلږنفاس لپاره ،اواكثره مده يې څلويښت ورځې دي بزائد استحاضه ده .

**تشريح** :(۱۶۳)نفاس،لقتنفس الرحم بالدم(درحم په وينه ساه واخيسته )څخه مشتق دى ياله خروج النفس په معنى دولدڅخه مشتق دى اوپه اصطلاح كې نفاس هغه وينه ده كومه چې له ولادت څخه وروسته راوځي .

(۱۶۴)حامله ښځې كه په حالت حمل كې وينه وليدله ياپه حالت ولادت كې دماشوم له پيداكيدلو څخه وړاندي وينه وليدله نوداوينه استحاضه ده كه څه هم دحيض په مقداروينه ويني ولې چې دحيض اونفاس وينه له رحم څخه راځي اودرحم وينه له حامله ښځې څخه ممكنه نه ده ولې چې دحمل په وجه درحم خوله بنديږي نوپه حالت حمل كې وينه درحم له ويني څخه علاوه ده اودرحم له علاوه څخه چې كومه وينه راځي هغه استحاضه ده په دي وجه داوينه استحاضه ده .دامام شافعي رحمه الله په نزدداوينه حيض ده په دي شرط چې په هغه ورځوكې راوتلې وي په كوموكې چې دي ته دحيض دراتلوعادت وي ولې چې دادحيض په زمانه كې له رحم څخه راوتونكي وينه ده لهذاحيض دى .

(۱۶۵)هغه ناتمام ماشوم دكوم چې بعض خلقت ظاهروي مثلاًگوته ،پښې اوويښتان وغيره هغه دولدتام په حكم كې دى يعني ده په وجه سره ښځه نفاس والاجوريږي لهذاكه ښځه مينځه وي اوددي مولى له دي سره وطى كړي وي نودامينځه دمولى ام ولده گرځي اوكه ښځه مطلقه وي نوددي په وجه عدت ختميږي .اوكه دماشوم اعضاء نه وي ظاهرشوي نوله دي څخه وروسته چې كومه وينه راځي هغه نفاس نه دى ،عموماًدماشوم اعضاء له علوق څخه په يوسل اوشلوورځوكې ظاهريږي ،داعضاء له ظاهريدلو څخه مرادنفخ روح ده كه نه نو اعضاء خوديرله وړاندي لاظاهريږي .

ف:كه ماشوم په داسي حال وپريږيد چې اعضاء يې بالكل نه وو ښكاره شوي نوپردي دنفاس والاحكام نه جاري كيږي، اوبهيدونكې وينه حيض شمارل كيږي په دي شرط چې دوه خبري موجودوي ،لږترلږه به داوينه دردريوورځوپوري جاري وي،اوله دي څخه وړاندي به يې طهركامل تيركړى وي (يعني له دي څخه وړاندي به ښځه لږترلږه پنځلس ورځې پاكه پاتې شوي وي )كه دادوه خبري نه وي ياله دوئ څخه يوه نه وه نوبهيدونكې وينه حيض نه بلكه استحاضه شمارل كيږي لمافي الدرالمختار:فان لم يظهر له شئ فليس بشئ والمرئي حيض ان دام ثلاثا وتقدمه طهرتام والااستحاضة (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار: ۱/۲۲۱)

(۱۶۶) قوله ولاحد لاقله اى لاحد لاقل النفاس ،ائمه ثلاثه او اكثر اهل علم پر دي متفق دي چې دنفاس داقل مدت څه حدنشته نو كه دښځې ماشوم وزيږيدى اويو ساعت وينه راغله او بيا ودريده نو دا ښځه پاكه شوه اوس به روژه هم نيسې او لمونځ به هم اداء كوي ولى چې دماشوم زيږيدنه ددي دليل دى چې داوينه له رحم څخه راغلې ده او دماشوم له زيږيدنې څخه وروسته چې كومه وينه له رحم څخه راځي هغه ته نفاس ويل كيږي لهذا اوس دكوم امتدادي علامې ضرورت نشته په خلاف دحيض چې په هغه كښې تر درېو ورځو پوري دوينې جاري والى شرط دى تر څو دي وينې له رحم څخه راتلل معلوم شي ولى چې ددي په حيض والى باندي بل كوم علامت نشته .

ف: كه دكومې ښځې دنفاس وينه له ولادت څخه وروسته څو ساعته ياله يوې ورځې څخه وروسته بنده شوه نو اوس په دي ښځې غسل كول او لمونځ اداء كول او روژه نيول واجب دي ،دځينو ښځو وينه له څلويښتو ورځو څخه وړاندي بنديږي بيا هم هغوئ تر څلويښتو ورځو پوري لمونځ نه كوي داسې كول ګناه كبيره ده په داسې ښځه لازم ده چې په كومه ورځ ددي وينه ودريږي له هغې څخه دوروسته ورځو دلمونځونو قضاء او دروژې قضاء دي راوړي لماقال العلامة عبدالحى اللكنهوى: واقل النفاس لاحدله وعليه اتفق اصحابنا فلو انقطع دم النفاس بعدالولادة ساعة يجب عليها ان تصوم وتصلى بعد الاغتسال صرح بذالك شيخ الاسلام فى مبسوطه فما تعارف فى زماننا هذا من ان النساء لاتؤدين الفرائض الابعد انقضاء اربعين يوما وان انقطع الدم قبله ذنب كبير (هامش الهداية: ۱/ ۶۸)

(۱۶۷) قوله واكثره اربعون يوما اى اكثر النفاس اربعون يوما ،دنفاس په اكثره مده كې اختلاف دى زمونږ په نزد څلويښت ورځې دي له دي څخه زائد چې كومه وينه ده هغه استحاضه ده لحديث ام سلمة ﷺ ان النبى ﷺ وقت للنفساء اربعين يوما (يعنى نبى كريم ﷺ دنفاس والو ته څلويښت ورځې مقرري كړي )،دامام شافعى رحمه الله په نزد اكثر مدت نفاس شپيته ورځې دي همدا قول دامام مالك رحمه الله هم دى مګر مذكوره بالاحديث پر دوئ حجت دى .

(۱۶۸) وَنِفَاسُ التَّوْأَمَيْنِ مِنَ الْأَوَّلِ

**ترجمه**: او نفاس دغبرګوليانو ماشومانو په زيږيدلو سره په اول سره شروع كيږي .

**تشريح**: (۱۶۸) كه دكومې ښځې په يوه نس كې دوه ماشومان وزيږيدل يعنى ددواړو دولادت په منځ كې له شپږو مياشتو څخه لږ وخت وو نو دشيخينو په نزد ددي دنفاس ابتداء داول ماشوم له پيداكيدلو څخه ده .دامام محمد رحمه الله او امام زفر رحمه الله په نزد ددوهم ماشوم له پيداكيدلو څخه دنفاس ابتداء ده ،دامام محمد رحمه الله دليل دادى چې له اول ماشوم پيدا كيدلو څخه وروسته هم ښځه حامله ده او حاملې ښځې ته دحيض په شان نفاس هم نه ورځې همدا وجه ده چې كه دا ښځه متعده وي نو ددي عدت ددوهم ماشوم په زيږيدلو سره ختميږي ،دشيخينو دليل دادى چې حاملې ته په دي وجه وينه نه ورځې چې ددي درحم خوله بنده وي ليكن كله چې دماشوم په پيداكيدلو سره درحم خوله خلاصه شوه او وينه راووتله نو يقينا به دا نفاس وي ولى چې له ولادت څخه وروسته راوتونكې وينې ته نفاس ويل كيږي ،پاتې شو عدت تيريدنه هغه په دوهم ماشوم په دي وجه ختميږي چې عدت په وضع حمل پوري معلق دى او حمل كل مافى البطن ته ويل كيږي لهذا كل مافى البطن وضع كولو څخه وړاندي عدت نه ختميږي .

**ف**: راجح او مفتی به قول د شیخینو دی لمافی الشامیة: (قوله من الاول) والمرئی عقیب الثانی ان کان فی الاربعین فمن نفاس الاول والا فاستحاضة وقیل اذا کان بینهما اربعون یجب علیها النفاس من الثانی والصحیح هو الاول وماذکر المصنف هو قولهما (ردالمحتار: ۱/۲۲۱) هکذا فی مجمع الانهر: ۱/۸۳)

## بَابُ الْأَنْجَاسِ

### دا باب د نجاستونو په بیان کې دی

انجاس د نجس جمع ده او نجس بفتح النون وکسر الجیم د طاهر ضد دی، او نجاست د طهارت ضد دی، نجس له خبث څخه عام دی دکوم چې اطلاق پر حقیقي نجاست کیږي او له حدث څخه هم عام دی دکوم چې اطلاق پر حکمي نجاست کیږي غرض دا چې د نجس اطلاق پر حقیقي او حکمي دواړو کیږي.

کله چې مصنف رحمه الله د نجاست حکمي او دهغه د تطهیر له احکامو څخه فارغ شو نو د نجاست حقیقي او دهغه تقسیم او دهغه مقدا ر عفو او دهغه د محل د تطهیر بیان یې شروع کړ، او نجاست حکمي څرنګه چې له نجاست حقیقي څخه اقویٰ دی په دې وجه یې د نجاست حکمي احکام مقدم ذکر کړل، او نجاست حکمي اقویٰ په دې وجه دی چې د نجاست حکمي قلیل مقدار هم جواز صلوة لره مانع دی حال دا چې د نجاست حقیقي قلیل مقدار جواز صلوة لره مانع نه دی.

(۱۶۹) يَطْهُرُ الْبَدَنُ وَالثَّوْبُ بِالْمَاءِ وَبِمَائِعٍ مُزِيلٍ كَالْخَلِّ وَمَاءِ الْوَرْدِ (۱۷۰) لَا الدُّهْنِ (۱۷۱) وَالْخُفُّ بِالدَّلْكِ بِنَجَسٍ ذِي جِرْمٍ وَإِلَّا يُغْسَلُ (۱۷۲) وَيَبِسُ مَنِيٍّ آدَمِيٍّ يَابِسٍ بِالْفَرْكِ وَإِلَّا يُغْسَلُ (۱۷۳) وَنَحْوُ السَّيْفِ بِالْمَسْحِ (۱۷۴) وَالْأَرْضُ بِالْيُبْسِ وَذَهَابِ الْأَثَرِ لِلصَّلَاةِ لَا لِلتَّيَمُّمِ

**ترجمه**: پاکیږي بدن او جامه په اوبو سره او پر هر بهیدونکی شی سره لکه سرکه او عرق ګلاب، نه په تیلو سره، او موزه په مښلو سره په جسم لرونکې نجاست کې که نه نو پرېمنځل کیږي به، او وچ منی په ګرولو سره که نه نو پرېمنځل کیږي به، او د توري په شان شیان په مښلو سره، او ځمکه په وچیدلو سره او د نجاست د اثر په لیرې کیدلو سره دلمانځه لپاره نه د تیمم لپاره.

**تشریح**: (۱۶۹) د نجاست حقیقي په کوموشیانو سره زائلول جائز دی په دې کې اختلاف دی د شیخینو په نزد په اوبو او هر داسې شي سره د نجاست زائلول جائز دی کوم چې بهیدونکی او پاک وي او په هغه سره د نجاست زائلول ممکن هم وي (یعنی په نښتیځلو سره نښتیځل کیږي) لکه سرکه، د ګلاب اوبه او ماء مستعمل وغیره.

د امام محمد رحمه الله امام زفر رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نزد له اوبو څخه ماسوا په نورو شیانو سره پاکې حاصلول جائز نه ده د دوئ دلیل دا دی چې پاکونکی شی له نجاست سره په یو ځای کیدلو په اول ملاقات کې ناپاک ګرځي او کوم شی چې په خپله ناپاک وي هغه بل شی نه شي پاکولی د قیاس تقاضا خو دا ده چې اوبه هم مفید طهارت نه شي لیکن د ضرورت په وجه سره په اوبو کې قیاس متروک دی په دې وجه اوبه مفید طهارت دي او له اوبو څخه ماسوا کوم بل شی مفید طهارت نه دی.

دشيخينو دليل دادی چې بهيدونکی شی نجاست له بيخه په ايستلو سره ليري کوي اوپه اوبو کې هم دپاکوالی صفت په همدي وجه دی چې هغه نجاست ليري کوي نوکله چې دامعنی په نورو بهيدونکوشيانوکې موجوده ده نوداوبوپه شان هغوئ هم پاکونکې دي .

ف:دشيخينو قول راجح دی ليکن داوبوپه موجودوالی کې په نورمائعوشيانوسره نجاست ليري کول مکروه دی لمافی شرح التنوير:(يجوزرفع نجاسة حقيقية عن محلها)ولواناء اوماكولاعلم محلهااولا(بماء ولومستعملا)به يفتى (وبكل مائع طاهر قالع)للنجاسة ينعصر بالعصر ،قال ابن عابدين (تنبيه) صرح فى الحلية فى بحث الاستنجاء بالتكره ازالة النجاسة بالمائع المذكور لمافيه من اضاعة المال عندعدم الضرورة (الدر المختار مع رد المحتار: ۱/۲۲ )

ف:چاپرخپله جامه نجاست وليدی اودی په دي نه وخبرچې دانجاست له څه وخته لګيدلی دی نودامام ابوحنيفه دقول مختارمطابق پرده له دي لمانځه څخه علاوه په کوم کې چې دی اوس شروع دی دکوم بل لمانځه اعاده لازمه نه ده لمافی الشامية :ادرأى على ثوبه نجاسة ولايدرى متى اصابته ففيه لقاسيم واختلافات والمختار عندابى حنيفه انه لايعيدالاالصلوة التى هوفيها(ردالمحتار: ۱/۲۴۰ )

ف:که چاته دامعلومه وي چې زماددي جامې يوطرف نجس دی مګرپه نجس طرف کې دده شک وي نوداکس دي احتياطاخپله داجامه ټوله پريمينځې ولی چې نجس طرف نه يقينامعلوم دی نه ظنالهذاکوم يوه طرف ته ترجيح نه شې ورکولی لمافی الشامية :والقول بغسل الكل وعليه مشى فى الظهيرية ومنية المفتى واختاره فى البدائع احتياطاقال لان موضع النجاسة غير معلوم وليس البعض اولى من البعض (حواله سابق)

(۱۷۰)قوله لاالدهن اى لايطهر البدن والثوب الدهن ،يعنی په تيلواوغوړووغيره سره دبدن اوجامې طهارت نه حاصليږي په دي وجه چې تيل وغيره که څه هم پاک دي مګرپه نښتيځلوسره نه نښتيځل کيږي بلکه په جامه وغيره کې جذب کيږي په دي وجه په تيلووغيره سره نجاست نه زائليږي .

(۱۷۱)قوله والخف بالدلک :الخف مرفوع دی پرالبدن معطوف دی اى يطهرالخف بالدلک ،قوله بنجس داله الخف څخه دحال والی په وجه پرمحل دنصب کې دی ای حال کونه متنجسابنجس ذی جرم ، يعنی که پرموزي چپلي وغيره باندي جسم دارنجاست دلګيدولکه ګوبر،پاخانه وغيره بياوچه شوه بيايې داپرځمکه په مښلوسره صاف کړل نوموزه وغيره پاکيږي اوله دي سره لمونځ جائزدی ولی چې دموزي اوچپلي وغيره په پوست کې دسخت والی په وجه سره دنجاست اجزاء نه شې جذبيدلی مګردیرکم ، بياجسم لرونکی نجاست چې کله وچ شي نودنجاست جسم هغه کم مقدارهم خپل طرف ته جذب کوي نوکله چې دنجاست جسم زائل شي نوکوم اجزاء چې په هغه پسې قائم دي هغه هم زائليږي په دي وجه په مښلوسره پاکيږي ،البته نجاست که لوندوي نوپرځمکه په مښلوسره نه پاکيږي بلکه پريمنځل يې ضروري دی ولی چې په مښلوسره نجاست نورهم خپريږي .

ف:امام ابويوسف رحمه الله فرمايي چې جسم لرونکی نجاست مطلقاپه مښلوسره پاکيږي خواه که وچ وي اوکه لوندوي په دي شرط چې اثريې پاتې نه شي ولی چې نبی کريم ﷺ فرمايي چې کوم کس چې مسجدته دداخليدلواراده وکړي هغه دي خپلو چپلوته وګوري نوکه پردوئ نجاست ووپرځمکه دي وموښي ځکه دچپلوپاکونکي ده .وجه استدلال داده چې نبی کريم ﷺ دوچ اولانده نجاست ترمنځ فرق نه دی کړی

لهذدواړه قسمه نجاست پرڅمکه په مښلوسره پاکيږي وعليه الفتوى لمالي الشامية: (قوله بذى جرم) اى وان كان رطباعلى قول الثاني وعليه اكثر المشائخ وهو الاصح المختار وعليه الفتوى لعموم البلوى (ردالمحتار: ۱/۲۲۶) حال داچې دامام محمد رحمه الله په نزدله منى څخه ماسوا که نجاست وچ وي اوکه لوندوي صرف په پريمنځلوسره پاکيږي مښل کفايت نه کوي.

قوله والايغسل اى وان لم تكن النجاسة ذاجرم يغسل ،يعنى كه نجاست جسم لرونکى نه وي لکه بولې وغيره نوهغه به پريمنځل کيږي په دي وجه چې داسې نجاست په مښلوسره نه پاکيږي بلکه ديرپسې خپريږي.

(۱۷۲) قوله ويعنى اى المتنجس بالمنى اليابس يطهر بالفرك ,قوله والايغسل اى وان لم يكن المنى يابسا يغسل ،يعنى منى ناپاک دي نجاست غليظه دي نوکه وچ شول نوهغه په مښلوسره صافول کافى دى اوکه لانده وي نوپريمنځل يې واجب دي ولى چې نبى کريم ﷺ حضرت عائشې رضي الله عنها ته فرمايلي وو ﴿فاغسليه ان كان رطباوافركيه ان كان يابسا﴾(يعنى که منى لانده وي نوهغه ووينځه اوکه وچ وي نوهغه په مښلوسره صاف کړه)،همداراز نبى کريم ﷺ فرمايلي ﴿ إِنَّمَا يُغْسَلُ الثَّوْبُ من خمسٍ وَعَدَّ منها الْمَنِيَّ ﴾(يعنى جامه له پنځو شيانوڅخه پريمنځل کيږي له هغوپنځوشيانويې منى هم ذکرکړل).

ف:دعلامه شامى رحمه الله له تحقيق څخه معلوميږي چې منى که غليظ وي خواه که دنروي اوکه دښځې نوله وچيدلو وروسته په مښلوسره داثراتوپه زائلولوسره پاکيږي اوکه رقيق وونوپريمنځل يې ضروري دي قال حاصله ان كلامهم متضافر على ان الاكتفاء بالفرك فى منى استحسان بالاثر على خلاف القياس فلايلحق به الامالى معناه من كل وجه والنص وردفى منى الرجل ومنى المرأة ليس مثله لرقته وغلظ منى الرجل والفرك انمايؤثرزوال المفروك اوتقليله وذالك فيماله جرم والرقيق المائع لايحصل من فركه هذاالفرض فيدخل منى المرأة اذاكان غليظاويخرج منى الرجل اذاكان رقيقاالعارض (ردالمحتار: ۱/۲۲۹) وعن محمدانه قال ان كان المنى غليظافجف يطهر بالفرك وان كان رقيقالايطهر بالفرك هذاهوالبق بهذالزمان.

ف:دامام شافعى رحمه الله په نزدمنى نجس نه دي دده دليل دحضرت عائشه رضي الله عنها حديث دى ﴿قالت كُنتُ أفرُكُ المَنِيَّ من ثَوْبِ رسول الله صلى الله عليه وسلم ثُمَّ يُصَلِّي فيه وَلَا يَغْسِلُهُ﴾ (يعنى مابه دنبى کريم ﷺ له جاموڅخه منى مښل اوده به په هغوکې لمونځ اداء کاوهغه به يې پريمنځل نه )نوکه منى نجس واى نونبى کريم ﷺ به لمونځ نه ورسره کاوو،احناف ځواب ورکويى چې که منى نجس نه واى نودمښلوبه څه ضرورت وو؟اومښل هم دتطهيريوطريقه ده لکه چې په روايت کې راځي اذوطى احدكم بنعله الاذى فان التراب له طهورا،نولکه څرنګه چې په دي حديث کې له وطى اذى څخه وروسته په حصول طهارت بالتراب سره په طهارت اذى باندي استدلال صحيح نه دى همداشان دامام شافعى رحمه الله له وړاندي کړل شوي روايت څخه په طهارت منى باندي استدلال صحيح نه دى.

(۱۷۳) قوله ونحوسيف بالمسح اى ويطهرنحوالسيف بالمسح ،يعنى نجاست که په توره ومښتى نوهغه په مښلوسره پاکيږي اومرادهرهغه شى دى چې په هغه کې نقوش ،لوړې ژوري اومسامات نه وي لکه اينه ،چاقو،تازه هډوکى،اونوکان وغيره چې داسې ټول شيان په مښلوسره پاکيږي په دي وجه په اوبوسره پريمنځل ضروري نه دي ولى چې ددوئ دننه نجاست نه داخليږي اوکوم چې په ظاهرمونښتي دي هغه په مښلوسره پاکيږي.

(۱۷۴)قوله والارض بالیبس ای وتطهر الارض بیبس النجاسة علیها ،یعنی که پر ځمکه نجاست ولګید وبیا هغه په لمرياګرمۍ وغيره سره وچ شواودنجاست اثر(یعنی رنګ اوبوی)ختم شونوځمکه پاکيږي په دي ځای لمونځ اداء کول جائزدی لیکن په هغه تیمم کول جائزنه دی ولی چې نبی کریم ﷺ فرمایلي﴿ ایما ارض جفت فقدذکت ﴾(یعنی کومه ځمکه چې هم وچه شي هغه پاکه شوه )﴿ وقال ﷺ ذکاة الارض یبسها ﴾(یعنی دځمکې پاکې دهغې وچوالی دی )،اوتیمم په دي وجه نه دی جائزچې دتیمم لپاره دخاورې دپاکوالي شرط په نص کتاب یعنی ﴿ فتیمموا صعیدا طیبا ﴾سره ثابت دی اوکوم حکم چې په نص کتاب سره ثابت وي هغه قطعی وي لهذادتیمم لپاره دخاورې دطهارت یقینی والی ضروري دی حال داچې دلته دځمکې طهارت په خبرواحدیعنی ایماارض الخ سره ثابت شوی دی اوکوم حکم چې په خبرواحدسره ثابت شي هغه غیریقینی اوظنی وي ،نوتیمم دکوم لپاره چې دخاورې طهارت قطعی الثبوت دی په هغه خاوره نه ده جائزدکومې چې طهارت ظنی الثبوت وي ،همداراز داوجه هم ده چې دلمانځه لپاره دځمکې پاکوالی شرط دی حال داچې دتیمم لپاره دځمکې طهور(پاکونکې )والی شرط دی اوداځمکه طاهره ده طهوره نه ده .

ف:په فرش کې دلګیدلوخښتو،وښواودرختوهم همداحکم دی کوم چې دځمکې دی یعنی په وچیدلوسره پاکیږي لماروینا ،لیکن که خښته ،واښه ،درختې اودخاورې لوښي له ځمکې څخه جلاوي نوپه وچیدلوسره نه پاکیږي ولی چې له مذکورروایت څخه داثابتیږي چې وچ والی دځمکې لپاره پاکې ده حال داچې مذکوره شیان ځمکه نه ده لمافی شرح التنویر:(و)حکم(اجر)ونحوه کلبن(مفروش وخص)بالخاء تحجیر قسطح(وشجر ة و کلاقائمین فی ارض کذالک)ای کارض فیطهر بجفاف و کذا کل ماکان ثابتا فیها لاخذه حکمها باتصاله بها فالمنفصل یغسل لاغیر الاحجر خشنا کرحی فکارض (الدر المختار علی هامش رد المحتار: ۱/۲۲۸)

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزدمذکوره بالاشیان (په فرش کې لګیدلې خښتې وغیره )صرف په اوبوسره پاکیږي دقیاس تقاضاهم همداده ولی چې اعیان متنجسه دجامې په شان په پریمنځلوسره پاکیږي مګردنبی کریم ﷺ دارشادذکاة الارض یبسها(یعنی دځمکې پاکې ددې وچوالی دی)په وجه سره قیاس متروک شوی دی.

ف:دپاکې دحاصلولومختلفې ذرائع دي چې له هغوئ څخه یوڅوېې دادي (۱)اوبه ،کومې چې دنجاست حقیقي اوحکمي دواړولپاره کفایت کوي .(۲)سیال (یعنی بهیدونکی)شی ،کوم چې دنجاست حقیقي دلیرې کولولپاره کفایت کوي (۳)خاوره ،کومه چې داوبوپه استعمال دنه قادروالی په صورت کې نجاست حکمي یعنی حدث اوجنابت دلیرې کولولپاره کفایت کوي (۴)دباغت ،دداپوستکي دپاکولوذریعه ده (۵)اوبه راکښل ،دادڅاګانودپاکولوطریقه ده (۶)منبل ،داجسم لرونکی نجاست لیرې کوي (۷)ګرول، داودچواوختو منی دلیرې کولولپاره داحنافوپه نزدکافی دی(۸)مسح ،داسختواوصیقل شویوشیانو مثلاتوره ،آئینه وغیره څخه دنجاست حقیقي لیرې کولولپاره کفایت کوي (۹)په ګرمۍ وغیره سره وچیدل، دادځمکې دپاکولوذریعه ده (۱۰)سوځول ، دځینوشیانوسوځول هم دطهارت ذریعه ده مثلادخوښیولپاره سوځول دهغودپاکې ذریعه ده (۱۱)دحقیقت بدلیدل ،مثلاخنزیر دمالګې په کان کې مالګه جوړه شوه

يا دخنزير له چربي څخه صابن جوړ شو نو د امام محمد رحمه الله په نزد پاكيږي وهو المختار للفتوى، والتفصيل بما لامزيد عليه في الدر المختار مع الشامية: ۱/ ۲۳۰)

(۱۷۵) وعفي قدر الدرهم كعرض الكف من نجس مغلظ كالدم والخمر وخرء الدجاج وبول ما لا يؤكل والروث والخثي (۱۷۶) وما دون ربع الثوب من مخفف كبول ما يؤكل والفرس وخرء طير لا يؤكل ودم السمك ولعاب البغل والحمار وبول انتضح كرؤس الابر

**توجمه**: او معاف دی مقدار د درهم د ورغوي دسوري برابر نجاست غليظه لكه وينه، شراب، د چرګې ګندګي، بولې د هغو ځارويو چې د هغو غوښه نه خوړل كيږي، ليدا او ګوبر، او (معاف دی) له څلورمې برخې جامې څخه كم نجاست خفيفه لكه بولې د هغو ځارويو چې د هغو غوښه خوړل كيږي او د آس بولې او د هغه مارغه ګندګي چې د هغه غوښه نه خوړل كيږي او د ماهي وينه او ناري دخره او قچرا و هغه بولې كومې چې والوځي دستنې د سرونو په برابر.

**تشريح**: نجاست پر دوه قسمه دی غليظه، او خفيفه، غليظه هغه دی چې د هغه ناپاكي په دليل قطعي سره ثابته وي او د هغې د ناپاكي په باره كې نصوص متعارض نه وي لكه د انسان بولې، ګندګي او وينه وغيره واو خفيفه هغه دی كوم چې داسې نه وي لكه د ماكول اللحم ځارويو بولې دا د امام ابو حنيفه رحمه الله رأيه ده، د صاحبينو په نزد نجاست غليظه هغه دی چې د هغه په ناپاكي فقهاء متفق وي او خفيفه هغه دی چې د هغه په ناپاكي فقهاء متفق نه وي، د امام ابو حنيفه رحمه الله قول راجح دی لما في العناية: والجواب ان اختلاف العلماء لا يخرج النجاسة عن كونها مغلظة لانها لم يرد نص بخلافه كان اختلافهم بناء على الرأي وهو لا يعارض النص وكذالك البلوى لا تعتبر في موضع النص (العناية: ۱/ ۱۸۱)

(۱۷۵) كه نجاست غليظه لكه بهيدونكې وينه، شراب، د چرګې ګندګي، د غير ماكول اللحم ځارويو بولې، ليدا او خوټايې وغيره د چاپر بدن يا جامو ولګيږي نو په قدر د يوه درهم يا د ورغوي د سوري مقدار يا له دې څخه لږ معاف دي كه له دومره اندازه نجاست سره لمونځ اداء شو نو لمونځ صحيح دی ولی چې له قليل مقدار نجاست څخه ساتنه ممكنه نه ده لهذا بناء بر ضرورت هغه معاف كړل شوی دی، او كه نجاست له يوه درهم څخه زائد وي نو لمونځ جائز نه دی.

په نجاست قليل و كثير كې حد فاصل درهم او د ورغوي د سو مقدار دی د درهم او ورغوي د سور (پلن والي) مقدار قليل دی له دې څخه زائد كثير دی، او دا پر موضع استنجاء باندې قياس شوی دی يعنی د استنجاء ځای بالاجماع معاف دی نو فقهاؤ د هغه مقدار په اندازه كولو سره يو درهم د عفو تقدير بيان كړی دی او كه له يوه درهم څخه زائد نجاست لګيدلی وی نو له هغه سره لمونځ كول جائز نه دی لما قال ابن عابدين: وفي الحلية التقدير بالدرهم وقع على سبيل الكناية عن موضع خروج الحدث من الدبر كما افاده ابراهيم النخعي بقوله انهم استكرهوا ذكر المقاعد في مجالسهم فكنوا عنه بالدرهم (رد المحتار: ۱/ ۲۳۱) د امام شافعي رحمه الله په نزد په نجاست قليل او كثير كې هيڅ فرق نشته د دواړو پاكول ضروري دي ولی چې په نصوصو كې په قليل او كثير كې هيڅ تفريق نه دی شوی.

ف: بيا كه نجاست نرم وي نو د درهم مقدار د مساحت په اعتبار سره دی يعنی كه د لاس د ورغوي د پلنوالی په اندازه يا له دې څخه كم وي نو معاف دی، او كه نجاست ټينګ وي نو د درهم مقدار د وزن په اعتبار سره مراد دی يعنی د نجاست وزن د يوه درهم يا له دې څخه كم وي نو معاف دی، او له درهم څخه مراد هغه دی چې د هغه وزن

دیوه مثقال له وزن سره برابروي ،دورغوي دعرض دمعلومولوطریقه داده چې په لپه کې اوبه راوخله اوګوتې ښې خلاصې کړه نوپه ورغوي کې چې څومره اوبه پاتې شې دادورغوي عرض دی لمافی الهندیة :والصحیح ان یعتبربالوزن فی النجاسة المتجسدة وهوان یکون وزنه قدرالدرهم الکبیرالمثقال وبالمساحة فی غیرهاوهوقدرعرض الکف(هندیة: ۱/۴۵)وفی الشامیة: وطریق معرفته ان تغرف الماء بالیدثم تبسط فمابقی من الماء فهومقدار الکف(ردالمحتار: ۱/۲۳۳)

ف:دصاحبینوپه نزددلید(دخره ګندګې)اوخوښیونجاست غلیظه نه بلکه خفیفه دی دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدددي شیانونجاست، نجاست غلیظه دی اوهمدا راجح دی لمافی الشامیة :لکن فی النکت للعلامة قاسم ان قول الامام بالتغلیظ رجحه فی المبسوط وغیره ولذاجری علیه اصحاب المتون (ردالمحتار: ۱/۲۳۵،کذافی الهندیة: ۱/۴۶)

ف:دامام زفر رحمه الله په نزددماکول اللحم اوغیرماکول اللحم په ګندګې کې فرق شته یعنی دماکول اللحم ګندګې نجاست خفیفه دی اودغیرماکول اللحم ګندګې نجاست غلیظه دی ،دامام محمد رحمه الله په نزدلیدمانع عن الصلوة نه دي که څه هم ډیرزیات وي ،مروی ده چې امام محمد رحمه الله چې کله ری ښارته داخل شونوویې لیدل چې دهغه ځای ټولې لارې له لیدواوګوبروڅخه ډکې وي نوفتوی یې ورکړه چې داکه کثیرفاحش هم په جامو ولګیږي نومانع عن الصلوة نه دي، پرهمدې مشائخ بخاری کیچړقیاس کړی دی کوم چې په لاروکې له ګوبرواوخاوروڅخه په مخلوط ډول پراته وي چې دبخاری کیچړکه په جامو ولګیږي نومانع لمانځه نه دي لمافی فتح القدیر:حتی رجع محمدآخراالی انه لایمنع الروث وان الفحش لمادخل الری مع الخلیفة ورأی بلوی الناس من امتلاء الطرق والخانات بها،وقاس المشائخ علی قوله هذاطین بخاری لان مشی الناس والدواب فیها(فتح القدیر: ۱/۲۰۵باب الانجاس )لهذازمونږپه زمانه کې که چیرته دابتلاء عام صورت وونودامام محمد رحمه الله پرقول دفتوی ورکولوګنجائش شته.

(۱۷۶)قوله ومادون ربع الثوب ای وعفی مادون ربع الثوب ،یعنی نجاست خفیفه لکه دماکول اللحم څارویوبولې ،دآس بولې، دهغومارغانوګندګې چې دهغوغوښه نه خوړل کیږي ،دماهی وینه ،دقچراوخره نارې که دچاپربدن یاجامو ولګیدنوکه له یوې څلورمې څخه لږمقدارلګیدلی وونوهغه معاف دی اوکه یوڅلورمه یاله دې څخه زائدوونوهغه معاف نه دی اوله هغه سره لمونځ کول جائزنه دی ولی چې مانع مقدارکثیرفاحش دی اوپه ډیرواحکاموکې څلورمه په کل پورې لاحقه ګرځول شوې ده مثلاًدسر دڅلورمې مسح دکل سردمسح قائم مقام ده لهذاپه یوې څلورمې دنجاست په لګیدلوسره کثرت فاحشه حاصلیږي په دې وجه که په یوه څلورمه نجاست ولګیدنولمونځ نه کیږي .

ف:بیایوروایت دادی چې دټول بدن اودټولې جامې څلورمه مراده ده ،دوهم روایت دادی چې لږترلږه هغه جامه چې په هغه کې لمونځ صحیح کیږي دهغې ربع مراده ده اودریم روایت دادی چې دجامې یابدن په کومه حصه چې نجاست لګیدلی وي دهغې څلورمه مراده ده مثلاًلستونی یالمن وغیره ،همدقول راجح دی لمافی شرح التنویر:(وعفی دون ربع) جمیع بدن و(ثوب) ولو کبیراهوالمختار ذکره الحلبی ورجحه فی النهر علی التقدیربربع المصاب کیدو کم وان قال فی الحقائق وعلیه الفتوی (الدرالمختارعلی ردالمحتار: ۱/۲۳۵)امام ابویوسف رحمه الله په شبرافی شبرباندې اندازه کړې دی.

ف: دماکول اللحم ځارويو بولې دامام محمد رحمه الله په نزد پاکې دي حال داچې دشيخينو په نزد نجاست خفيفه دي ولې چې نصوص په کې متعارض دي له حديث عرنيين څخه حلت اوله استنزهوا عن البول الخ څخه نجس والى معلوميږي ،اودامام ابويوسف رحمه الله داصل مطابق اختلاف علماء هم وموجود دى ،دامام محمد رحمه الله په نزد آس بولې پاکې دي حال داچې دشيخينو په نزد ناپاکې نجس خفيفه دي ولې چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دآس غوښه دآله جهاد په وجه سره مکروه ده نه داچې دآس غوښه نجسه ده نو آس په دي اعتبار سره په ماکول اللحم ځارويو کې داخل دی ،فتوی دشيخينو پر قول ده لماقال العلامة الحصكفي رحمه الله .من نجاسة مخففة كبول ماكول ومنه الفرس،وطهره محمد(الدر المختار: ١/٢٣٥)

ف: دغير ماكول اللحم مرغانو گندگې دامام محمد رحمه الله په نزد نجاست مغلظه ده ولې چې داسې مرغان له نجاست سره مختلط اوسيږي حال داچې دشيخينو په نزد داسې مرغان کله له هوا څخه گندگې غورځوي نوله دي څخه ساتنه مشکله ده په دي وجه ددوئ گندگې نجاست خفيفه ده لمافي الفتح :اختلف المشائخ في ان قولهمابجواز الصلوة بناء على طهارة خرء الطيور المحرمة ،اوعلى التقدير فيه ..........واتفقواعلى انه نجس مغلظ عندمحمد...........وجعل المصنف الاصح التخفيف بناء على ان الضرورة فيه لاتؤثر اكثر من ذالک فانه قلمايصل الى ان يفحش فيكفي تخفيفه(فتح القدير: ١/٢٠٧)

ف: دماهي وينه دامام ابويوسف رحمه الله په نزد ناپاکه ده اودخره اوقچر ناړي نجاست خفيفه دي .مگر صحيح داده چې دماهي وينه پاکه ده ولې چې دماهي وينه صورةً خووينه ده مگر په حقيقت کې وينه نه ده ولې چې وينه لرونکي ځاروي په اوبو کې نه اوسيږي ،اودخره اوقچر پس خورده يقيناپاکه ده اوشک ددي په مطهروالی کې ده لهذا ددوئ لعاب (ناړي) هم پاکې دي لمافي الشامية :والمذهب ان دم السمک طاهر لانه دم صورة لاحقيقة وان سؤر هذين (البغل والحمار) طاهر قطعاوالشک في طهوريته فيكون لعابهماطاهر (ردالمحتار: ١/٢٣٦)

که دبولو ځاځکي پر جامودستنې دسرپه برابرولگيدل نوله ربع ثوب څخه په کم مقدار جامه نه مرداريږي ولې چې له دي څخه ځان ساتل ممکن نه دی.امام ابويوسف رحمه الله فرمايې که دبولې ځاځکي پر جامو ولگيدل اودهغو اثر په جامه ښکاره شو نو دهغو پر يمنځل ضروري دی اوکه دهغو مجموعه ديوه درهم برابروه نوله هغو سره لمونځ کول جائز نه دی.

ف: دمتن قول مفتى به دى لماقال العلامة الشامي : بعدبحث :وقدظهر بماقررناه ان الخلاف فيمايرى اثره .....وان الارجح العفوعنه وعدم اعتباره كمامشى عليه الشارح(حاشية ابن عابدين: ١/٢٣٦)

که دبولو ځاځکي په اوبو کې ولويږي نو دبعضو مشائخو رأيه داده چې په دي سره اوبه نه مرداريږي ولې چې په دي شان ځاځکوسره لکه څرنگه چې جامه نه مرداريږي اوبه هم نه مرداريږي .او دبعضو رأيه داده چې اوبه مرداريږي ولې چې په جامه ساتنه کې څرنگه چې حرج دی په دي وجه هغه نه مرداريږي حال داچې په اوبو کې هيڅ حرج نشته لهذا اوبه مرداريږي اوهمدا صحيح دی لمافي الهندية : واماذاانتضح في الماء فانه ينجس ولايعفى عنه لانه طهارة الماء آكد من طهارة الابدان والثياب والمكان (هندية: ١/٣٦،كذافي الدر المختار: ١/٢٣٧)

(١٧٧)والنجس المرئي يطهر بزوال عينه إلا مايشق(١٧٨)وغيره بالغسل ثلاثا والعصر كل مرة(١٧٩)وبتثليث الجفاف فيما لاينعصر

**ترجمه**: او ښکاره کیدونکی نجاست پاکیږي د عین نجاست په لیري کولو سره مګر دا چې مشکل وي د هغه لیري کول، او له دي څخه علاوه په دري ځله پریمنځلو سره او په هر ځل نښتیځلو سره، او په دري ځله وچولو سره په هغو شیانو کې کوم چې نه نښتیځل کیږي.

**تشریح**: نجاست پر دوه قسمه دی. /نمبر۱. مرئی (کوم چې په وچیدلو سره په سترګو معلومیږي لکه پاخانه وغیره). /نمبر۲. غیرمرئی (کوم چې په وچیدلو سره په سترګو نه ښکاریږي).

(۱۷۷) قوله نجاست مرئی څخه د جامې د پاکولو طریقه داده چې د هغه عین او ذات لیري کړل شي ولی چې نجاست د خپل ذات په اعتبار سره په محل کې حلول کړی دی لهذا د هغه د ذات په لیري کولو سره نجاست لیري کیږي، البته که د نجاست داسې اثر (رنګ او بوی) پاتې شو د کوم چې زائلول مشکل وو د کوم چې زائلولو ته د صابن او اشنان وغیره ضرورت وو نو دا مانع جواز نه دي ولی چې د دي په زائلولو کې حرج دی او حرج په شریعت کې مدفوع دی.

(۱۷۸) قوله وغیره بالغسل ثلاثا الخ ای غیر المرئی من النجاسة یطهر بالغسل ثلاثا الخ، یعنی له نجاست غیرمرئی (نه ښکاره کیدونکی نجاست) څخه د جامې د پاکولو طریقه داده چې دومره دي وپریمنځل شي چې د وینځونکي غالب ګمان شي اوس پاکه شوه ولی چې د ازاله نجاست لپاره په پریمنځلو کې تکرار ضروري دی او د زوال نجاست قطعي علم ممکن نه دی په دي وجه د غالب ګمان اعتبار شوی دی او د غالب ګمان اندازه په دري ځله پریمنځلو سره لګول شوي ده ولی چې په دي تعداد سره غالب ګمان حاصلیږي نو د آسانې لپاره ظاهري سبب یعنی د دریو عدد د غالب ګمان قائم مقام ګرځول شوی دی او د دي تائید له حدیث اذا استیقظ احدکم من منامه الخ څخه هم کیږي. بیا ظاهر روایت دادی چې هر ځل نښتیځل هم ضروري دی ولی چې په نښتیځلو سره نجاست خارجیږي.

(۱۷۹) قوله وبتثلیث الجفاف فیما لاینعصر ای ویطهر بتثلیث الجفاف فیما لاینعصر، یعنی کوم شیان چې نه شی نښتیځل کیدای لکه چټائي وغیره نو هغه په دري ځله پریمنځلو او هر ځل وچولو سره پاکیږي ولی چې وچول مؤثر دي په ازاله نجاست کې څکه چې وچول د نښتیځلو کار ورکوي، مګر په وچولو سره مراد دادی چې د اوبو څڅیدل بند شي وچیدل مراد نه دي.

**ف**: د تثلیث شرط هغه وخت دی چې غاسل په وسوسه مبتلاوي د کوم چې په یو ځل پریمنځلو سره د پاکیدلو خیال نه کیږي او مفتی به قول دادی چې عدد دی تعیین نشته بلکه که په یو ځل پریمنځلو سره د غاسل ګمان غالب د پاکیدو شي نو دوهم او دریم ځل پریمنځل واجب نه دي البته مستحب ضروردي او همدا حکم د نښتیځلو دی لمافی الدر المنتقی علی هامش المجمع الانهر: ۱/۹۰: والفتوی علی اعتبار غلبة ظن الغاسل من غیر تقدیر بعدد مالم یکن موسوسا فیقدر بالثلاث، وفی البدائع ان التقدیر بالثلاث لیس بلازم بل هو مفوض الی رای المبتلابه، ومافی المحیط وغیره من اشتراط العصر احوط مسلم ولکن لایقتضی الوجوب وکذا کون الفتوی علیه وما اشتراط العصر فی کل مرة هو ظاهر الروایة وفی غیر روایة الاصول یکتفی بالعصر مرة واحدة وهو ارفق وفی التاتار خانیة عن النوازل وعلیه الفتوی.

**ف**: لیکن که یې له نلکي څخه اوبه په تویولو یا یې په لوی حوض یا جاري اوبو کې وینځی نو بیا د نښتیځلو او تثلیث اشتراط نشته بلکه دومره اوبه پرې تویول کافی دي څومره چې په دري ځله

پريمنځلو مصرفيږي ولې چې جريان الماء د تثليث او نبنتيځلو قائم مقام دي لمافي الشامية: المعتبر في تطهير النجاسة المرئية زوال عينها ولو بغسله واحدة ولو في اجانة كمامر فلا يشترط فيها التثليث غسل ولا عصر وان المعتبر غلبة الظن في تطهير غير المرئية بلا عدد على المفتى به او مع شرط التثليث على مامر ولا شك ان الغسل بالماء الجاري ومافي حكمه من الغدير او الصب الكثير الذي يذهب بالنجاسة اصلا ويخلفه غيره مرارا بالجريات اقوى من الغسل في الاجانة التي على خلاف القياس لان النجاسة فيها تلاقي الماء وتسري معه في جميع اجزاء الثوب فيبعد كل البعد التسوية بينهما في اشتراط التثليث وليس اشتراطه حكما تعبديا حتى يلتزم (ردالمحتار: ١/٢٢٢)

**ف:** دکورقالين (غالي) د ماشومانو په بولو وغيره په وجه سره مرداره وي چاودس وکړا و پرهغه يې پښه کښيښوده نو که پښه دومره لنده نه وه چې په هغې سره قالينه بنه لنده شي او پردي دومره لنده والي راشي چې که پردي کوم بل شی کښيښودل شي نو هغه به هم لوند شي نو پښه نه مرداريږي او که پښه دومره لنده وه چې په هغې سره قالينه هم بنه لنده شوه په کومه چې بل شی هم لنديږي نو پښه مرداريږي لمافي شرح التنوير: نام او مشى على نجاسة ان ظهر عينها تنجس والالا وقال ابن عابدين: (قوله نجاسة) اى يابسة لمافي متن الملتقى لو وضع ثوبا رطبا على ماطين بطين نجس جاف لاينجس قال الشارح لان بالجفاف تنجذب رطوبة الثوب من غير عكس بخلاف مااذا كان الطين رطبا (ردالمحتار: ١/٢٥٣)

(١٨٠) وَسُنَّ الاستِنجاءُ بِنَحوِ حَجَرٍ مُنَقٍّ (١٨١) وماسُنَّ فيه عَدَدٌ (١٨٢) وَغَسلُهُ بِالمَاءِ أَحَبُّ (١٨٣) وَيَجِبُ إِن جَاوَزَ النَّجَسُ المَخرَجَ وَيُعتَبَرُ القَدرُ المَانِعُ وَرَاءَ مَوضِعِ الاستِنجَاءِ (١٨٤) لَا بِعَظمٍ وَرَوثٍ وَطَعَامٍ وَيَمِينٍ

**ترجمه:** او سنت ده استنجا په مثل د پاکونکې ډبرې سره، او نه دی سنت په دې کې عدد، او په اوبو سره استنجاء کول بنه کار دی، او واجب دی که زيات شو نجاست له مخرج څخه او اعتبار به کيږي د مقدار مانع له موضع استنجاء څخه علاوه، نه په هډوکي سره او په څوښايو سره او د خوراک په شيانو سره او په ښي لاس سره مگر د عذر په وجه.

**تشريح:** څرنگه چې له سبيلينو څخه د نجاست ليرې کول له استنجاء ويل کيږي په دې وجه يې استنجاء د باب الانجس ماتحت ذکر کړه. استنجاء له نجو څخه ده نجو له نس څخه راوتونکی نجاست ته ويل کيږي نو د استنجاء معنی دا و بويا خاوري وغيره په ذريعه سره له نس څخه د راوتونکی نجاست څخه پاکي حاصلول دي.

(١٨٠) استنجاء زمونږ په نزد سنت مؤکده ده ولې چې نبی کريم ﷺ پر استنجاء مواظبت فرمايلې دی او مداومت مع ترک احياناً د سنتيت دليل دی، بيا استنجاء په پاکونکې ډبره يا هر هغه شی کوم چې په تطهير کې د ډبرې قائم مقام وي جائزده ولې چې مقصود پاکي حاصلول دي لهذا د مقصود اعتبار به کيږي په دې شرط چې غير محترم او غير قيمتي شی وي لکه د خاورو لوټې وغيره.

(١٨١) بيا په ډبرو کې کوم مسنون عدد نشته بلکه په څومره اندازه چې پاکي حاصله شي هغومره دي استعمال کړي خواه که درې وي يا کم و بيش، د امام شافعی رحمه الله په نزد د درېو ډبرو موجود والی ضروري دی لقوله ﷺ «اذا ذهب احدکم الى الغائط فليذهب معه بثلاثة احجار يستطيب بهن فانها تجزئ عنه» (يعنی کله چې څې له تاسې څخه کوم يو د پاخانې د کولو لپاره نو درې ډبرې د له ځان سره ويسې په هغو دي استنجاء وکړي او دا د استنجاء لپاره کافي دي)، زمونږ دليل د نبی کريم ﷺ ارشاد «من استجمر فليوتر ومن فعل هذا فقد أحسن ومن لا فلا حرج» (يعنی چا چې په ډبره استنجاء وکړه نو طاق دي کوي چا چې دي داسې وکړل نو ډير ښه يې وکړل او چا چې ونه کړل

پرهغه څه گناه نشته )لهذا په دري ډبروسره استنجاء كول ضروري نه دي، مگر داحنافوپه دي دليل اعتراض شوي دی چې له دي څخه خودوجوب ايتارنفی ثابتيږي نه دوجوب تثليث نفی ؟ځواب: ايتارعام دی اوتثليث خاص دی اودعام نفی دخاص نفی ته مستلزم ده ونوپه کومو روايتونوکې چې په دريوډبروسره داستنجاء کولوحکم دی هغه پراستحباب محمول دي .

( ۱۸۲ )په استنجاء كې دډبروله استعمالولو څخه وروسته داوبو استعمال ادب اومستحب دی ولی چې نبی کريم ﷺ به كله په اوبوسره استنجاء کوله اوکله به يې پرېښوده اوهمداداستحباب تعريف دی ،همداراز دايت مبارک ﴿ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا ﴾ (په قباء کې رجال دي کوم چې خوښوي چې ښه طهارت حاصل کړي )په باره کې حضرت ابوهريرة ﷺ له نبی کريم ﷺ څخه روايت کوي چې دادقباء والاوو په باره کې نازل شوي دی کوموچې به داستنجاء کولوپروخت له ډبروڅخه وروسته اوبه هم استعمالولې ،دځينې حضراتورأيه داده چې په دي زمانه کې دغذاء دتبديلۍ په بناء په اوبواستنجاء کول مسنون ده ولی چې دمخکنۍ زمانې خلگودپچوپه شان پاخانه کوله حال داچې په دي زمانه کې نرمه پاخانه کوي .

ف:دابايديادوساتل شي چې په اوبواستنجاء مستحب ده په دي شرط چې دکشف عورت خطره نه وي که دکشف عورت خطره وه نوترک دي کړي ولی چې کشف عورت فسق دی دکوم چې ارتکاب دحصول مستحب لپاره صحيح نه دی لمافی الشامية:(فلو كشف له الخ )ای للاستنجاء بالماء قال نوح افندی لان كشف العورة حرام ومرتكب الحرام فاسق سواء تجاوز النجس المخرج اولا وسواء كان المجتز اكثر من الدرهم او اقل ومن فهم غير هذا فقد سها لما فی شرح المنية عن البزازية ان النهی راجح علی الامر (ردالمحتار: ۱/ ۲۴۸)

( ۱۸۳ )که نجاست داستنجاء له ځای څخه ديودرهم په اندازه دلته هلته متجاوزشونواوس ډبره وغيره کافی نه ده بلکه په اوبوسره يې لیري کول واجب دي ولی چې اوس دادنجاست حقيقيه له بدن څخه دزائلولوله قبيلې څخه ده اونجاست حقيقيه له بدن څخه صرف په اوبوسره ليري کيدای شي . دتجاوزحددشيخينودمذهب مطابق دادی چې له موضع استنجاء څخه ماسواترقدردرهم زائدوي ولی چې پرمخرج موجودنجاست شرعاًساقط دی مگرامام محمد ﷫ فرمايي چې موضع استنجاء هم محسوب دی ،دشيخينوقول راجح دی لمافی ملتقی الابهر:ويجب ان جاوز النجس المخرج اكثر من درهم ويعتبر ذالك وراء موضع الاستنجاء (ملتقی الابهر: ۱/ ۹۹)،قال الشيخ عبدالحكيم الشهيد،وقال علامة قاسم والصحيح قولهما واختاره صاحب الكنز (هامش الهداية: ۱/ ۷۶)

ف:دافاده عام لپاره داستبراء په باره کې دحضرت مولانامفتی رشيداحمدلدهيانوی قدس سره يوه وقيع تحريربلفظه نقل کوم :**سوال** :په لوټه ډبولودڅاڅکودوچولومعهوده طريقه کومه چې نن صبامروجه ده ،اياداضروري ده که په دي طريقه سره څاڅوکې ونه کړل شي نواياالمونځ نه صحيح کيږي .که داطريقه شرط وي نونبی کريم ﷺ اوصحابه کرامو ﷺ ددي تعليم ولی نه ده کړی اوصحابه کرامو ﷺ داطريقه ولی نه ده اختيارکړي ؟بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**

فقهاء کرامورحمهم الله تعالی دبولودڅاڅکودوچولولپاره دامعهوده طريقه بيان فرمايلې ده دکومې وجه چې بعض علماء دابيانوي چې په مخکنۍ زمانه کې مثانې قوي وي په دي وجه دقطراتو دراتلواحتمال نه

وو ،په دي دورکې په مثانوکې هغه قوت نه دي پاتې ،په دي وجه په دي طریقه سره دقطراتودصفائي ضرورت پيښ شو ،لهذا دفقهاؤبیان کړي داطریقه دنبی کریم ﷺ اوصحابه کرامو ﷺ په قول اوعمل زیادت نه دی چې دي ته بدعت وویل شي بلکه دتغیرزماپه بناء باندي دموجوده زماني دضرورت په لحاظ سره دتنظیف اوتطهیر دیوي طریقې په وجه سره داهم عمل بالحدیث شمارل کیږي.

پر مذکوره وجه باندي دااشکال شته چې له بولو څخه وروسته دقطروراتلل دضعف مثاني په وجه سره نه وي ،دضعف مثانه په وجه سره چې کومه عارضه لاحقیږي دهغې اثرداوي چې په توخی ، پرنجي اوټوپ وغیره سره قطره خارجیږي اوچاته چې دامرض لاحق وي هغه ته داستبراء دامعهوده طریقه هم څه فائده نه ورکوي ،له بولو څخه وروسته درطوبت دښکاره کیدلوباعث ضعف مثانه ده بلکه دبولودنلي اوږدوالی اوپه هغه کې پیچ اوخم دهغه باعث جوړیږي ،په طبی نقطه نګاه سره ددي امرله مسلم والی څخه علاوه پردي دادلیل هم دی چې حضرات فقهاؤدښځولپاره داستبراء داطریقه نه ده تحریرکړي بلکه دایې په نارینه وپوري خاص کړي ده قال ابن عابدین :تحت قوله یجب الاستبراء الخ )وفیهاان المراة کالرجل الافی الاستبراء فانه لااستبراء علیهابل کمافرغت تصبر ساعة لطیفة ثم تستنجی ومثله فی الامداد(الشامیة: ۱/۳۱۹)له دي څخه ثابته شوه چې داستبراء ددي معهودي طریقې علت ضعف مثانه نه دی ،په دي وجه چې داعلت وای نوداحکم به ښځولره هم وای ،په ښځو کې څرنګه چې دبولونلي طویله اوخمداره نه ده په دي وجه یې دوئ مستثنی کړي دي .

کله چې داستبراء علت داشونودمعهودي طریقې پرځای یوبله آسانه اومختصره طریقه اختیاریدای شي هغه داچې له بولو څخه وروسته دي لومړی دپاخاني له ځای څخه دخصیتینوطرف ته په رګونوګوته تیره کړای شي له دي څخه وروسته دي دبولوپرنلی ګوته تیره کړای شي نوپه لاره کې چې کوم رطوبت دی هغه به خارج شي له دي څخه وروسته دقطري دراتلوهیڅ احتمال باقی نه پاتې کیږي ،بنده متعددځله ددي تجربه کړي ده چې په دي طریقه له استبراء کولو څخه وروسته څوسوه قدمه په ډیره تیزي سره تللی دی ،توخلې یې دي ،منډه یې وهلې ،څوپورته ناسته یې کړي ده له دي باوجود څه رطوبت په نظرنه ده راغلی .

له دي تحقیق څخه وروسته اصل اشکال بیرته عودکوي چې دنبی کریم ﷺ په زمانه کې هم داعلت موجودوونوده ولی ددي قسم داستبراء حکم نه وکړی اوصحابه کراموولی ددي اهتمام نه وکړی،له غورکولو څخه وروسته ددي ځواب داپه ذهن کې راځي چې شریعت دابتلاء عام په مواقع کې نجاست قلیله معاف کړی دی ، لکه رشاش البول کرؤس الابرة اوپه بیت الخلاء کې دمچانووغیره په غلاظت له کښینستلو څخه وروسته پرجسم اوجاموباندي کښینستل اوطین شارع وغیره،ددي قانون تقاضاداده چې داستبراء یوه طریقه هم استعمالول ضروري نه ده بلکه پروخت نجاست مرئیه په لوټه یااوبو سره صافول کافی دی له دي څخه وروسته که په غیر محسوس ډول څه رطوبت بهیږي نو هغه شرعاًمعاف دی، معهذا څرنګه چې په احادیثو کې داستبراء ډیرتاکید اوپرعدم اجتناب من البول باندي وعیدشدید واردشوی دی په دي وجه داحتیاط تقاضاداده چې په بطریق بالا داستبراء اهتمام وکړای شي یعنی دبولوپرنلی ګوته تیره کړای شي

اورطوبت خارج کړای شي له دي ځخه وروسته دي په لوټه یااوبو سره استنجاء وکړای شي،افضل داده چې لومړی په لوټه سره نجاست زائل کړای شي اوله دي ځخه وروسته اوبه استعمال شي،البته نن صباپه ښارونوکي دګټردسستم په وجه دلوټواستعمال ډیرتکلیف ورکونکی ثابتیږي ،دلوټوپه اچولوسره داوبولاره بندیږي کومه چې دډیرسخت تعفن اوایذاء باعث جوړیږي، بیادډوئ په صفائي کي هم ډیرذقت پېښېږي لهذاپه داسي مواقعوکي دلوټواستعمال هیڅکله بایدونه کړای شي،دلوټو استعمال مستحب دی اوځپل نفس اونورپه تکلیف کي اچول حرام دي ،دکوم مستحب کارلپاره دحرام ارتکاب جائزنه دی،البته دصفائي په غرض چې کوم جاذب کاغذپه بازارکي پیداکیږي دهغه استعمال جائزدی .

له بولوڅخه داستبراء اهتمام کول بلاشبه مؤکددی مګرپه دي کي ډیره غلوکول شرعاًصحیح نه ده په صحیح بخاری کي شته چې حضرت ابوموسی اشعری ﷺ دبولوپه باره کي له ډیرشدت څخه کاراخیستی ،حافظ بدرالدین عینی ﷫ ددي په شرح کي نقل کړي دي چې حضرت ابوموسی اشعری ﷺ دبولوله ځاڅکوڅخه دحفاظت په غرض سره په بوتل کي بولي کولي .مګرداشدت دنوروصحابه کرامو ﷺ خوښ نه وولکه چې په صحیح بخاری کي پردي دحضرت حذیفه ﷺ اعتراض منقول دی کان ابوموسی الاشعری ﷺ یشددفی البول ویقول ان بنی اسرائیل کان اذااصاب ثوب احدهم قرضه فقال حذیفة ﷺ لیته امسک اتی رسول الله ﷺ سباطة قوم فبال قائما(بخاری : ۱/۳٦)وقال الحافظ العینی ﷫ (قوله یشدد)جملة فی محل النصب علی انه خبر کان ومعناه کان یحتاط عظیمافی الاحترازعن رشاشه حتی یبول فی القارورة خوفاان یصیبه من رشاشه شیئ(عمدة القاری:۳/۱۳۸)

**دحضرت شاه عبدالعزیز ﷫ فتوی** :دطریقه مروجه داستبراء تارک ته چې کوم خلک بدعتی وایي نوداصرف ددي فرقه ظاهربین له مبالغاتوڅخه ده داقابل اعتبارنه ده ،په بخاری اودهغي په شروحوکي مذکوره ده چې ابوموسی اشعری ﷺ دعذاب قبرحدیث واوریدونوپه دي وجه هغه له بولوڅخه ډیراحتیاط کاوو،حتی چې کله به دبولوحاجت وونودبولوځای به یي په بوتل کي داخلاوواودهغه دننه به یي بولي کولي له دي ویري څخه چې داسي ونه شي چې چیرته پربدن یاجامه ځاڅکي ونه لګیږي ، نوحذیفه ﷺ دانکارپه ډول ده ته وویل چې ماولیدل چې نبی کریم ﷺ دیوقوم پرسباطه یعنی دکچرودا چولوځای ته ولاړی اوپه ولاړه یي بولي وکړي اوپه دي کي شبه نشته چې په ولاړه سره په بولوکولوکي دڅاڅکودلګیدلوګمان شته .اوپه تجربه سره ثابته ده چې کله په استبراء کولوکي مبالغه کیږي نوله مثاني څخه بولي راتویږي اوددي مثال دادی کله چې شیدي لوښل کیږي نوشیدي دځاروي په تي کي راځي اوکله چې لوښل موقوف کړای شي نوشیدي هم موقوفي شي .(فتاوی عزیزیه ۲،/۱۴۰)

**دحضرت حکیم الامت تهانوی ﷫ وینا**،حضرت خواجه صاحب عرض وکړچې ماته په استنجاء کي ډیره وسوسه پیداکیږي په ډیروخت کي په مشکل سره تول وچیږي په کتلوسره څه ناڅه راوځي .وي فرمایل داسي هیڅکله مه کوه ،په معمولي ډول سره استنجاء وکړه اووینځه یي ،په عوارف کي لیکلي دي چې ددي حال دتي په شان دی چې ترکله یي موښې څه ناڅه راوځي اوکه یي همداسي پریږدي نوهیڅ هم نشته .حضرت خواجه صاحب عرض وکړچې وروسته قطره رواځي .وي فرمایل چې هیڅ فکرمه کوه که دي خوښه وي وروسته دلمانځه اعاده وکړه لیکن ترکله چې په تکلف جبرکولوسره دوسوسي خلاف ونه کړل شي

دامرض نه ځي په دي وجه خوته په ډیرتکلیف کي یې .خواجه صاحب عرض وکړچي درطوبت په وجه سره دیوه وخت په اوداسه کي دبل وخت داوداسه لپاره شک پیداکیږي اوددي په وجه رومال هم وینځم ،وي فرمایل چي مه اودس کوه اومه رومال وینځه ،یوځوورځي په تکلف سره په بې التفاتي کولوسوسې ختمیږي .(ملفوظات کمالات اشرفیه صفحه ۱۹۸ملفوظ ۸۰۷)

له دي څخه ثابته شوه چي په استنجاء کي ډیره غلواوشدت له شرعاًمذموم والی علاوه دصحت لپاره هم مضرده اوذهني انتشاراودماغي پریشانیوباعث هم دی ،فقط والله سبحانه وتعالی اعلم . (احسن الفتاوی جلد :۲صفحه ۱۰۴تا۱۰۷)

(۱۸۴)قوله ولایعظم وروث الخ ای لایستنجی بعظم وروث الخ ،یعنی په هډوکی ،ګوبراودخورک په شیانواستنجاء وهل شرعاًممنوع ده لقوله ﷺ لاتستنجوابالروث ولابالعظام فانه زاداخوانکم من الجن (یعنی تاسي په ګوبراوهډوکی استنجاء مه کوئ ولی چي هغه ستاسي دورونویعني پیریانوتوشه ده )،اوپه دي وجه سره هم چي دادجناتودغذااتلاف اواهانت دی، همداشان په ښي لاس سره هم استنجاء نه کیږي ولي چي نبی کریم ﷺ په ښي لاس سره له استنجاء کولوڅخه منع فرمایلي ده البته که په کینڼ لاس له استنجاء کولوڅخه معذوروي نوجائزدی.

ف :صاحب جوهره دیارلس داسي شیان ذکرکړي دي چي په هغوسره استنجاء مکروه ده ./نمبر۱- هډوکی ./نمبر۲- ګوبردي دواړودکراهت وجه پورته ذکرشوه ./نمبر۳- په وجه پاخانه سره ،ولی چي داپه خپله نجسه ده په دي وجه په دي سره استنجاء صحیح نه ده ./نمبر۴- دخوراک په شیانو./نمبر۵- ونمبر۶- ونمبر۷- په وینښتانو،وریواوجامي سره استنجاء مکروه ده ددي دریواړووجه داده چي په دي سره په استنجاء کولوکي اسراف اواهانت دی ./نمبر۸- کوټله. /نمبر۹- شیشه ونمبر۱۰- کودری نمبر۱۱- دیانس نری،دره ددي څلورووجه داده چي داجسم زخمي کوي ./نمر۱۲- کاغذولی چي کاغذدلیکلوآله ده (البته کوم شی چي دهمدي لپاره وضع شوي وي په هغوسره استنجاء کول جائزده لکه تیشوپیپر وغیره)،/نمبر۱۳- په راسته لاس سره استنجاء مکروه ده ددي دکراهت وجه پورته بیان شوه .

**دبولومکروهات** :په اوبوکي بولي یاپاخانه کول مکروه دي ،که په ولاړودیرواوبوکي وي نومکروه تحریمي ده اوکه ولاړي لړاوبه وي نوحرام ده اوپه روانواوبوکي مکروه تنزیهي ده مګرداچي مجبوري وي لکه کوم کس په کښتۍ کي سپوروي ،همداشان دلښتیانوپرسربیت الخلاء جوړول یادبیت الخلاء اوبه په لښتیانوکي بهول صحیح نه ده ،دنهریاڅاه په حوض یاچشمي پرغاړه بولي کول که څه هم نجاست ابوته نه ورسیږي ،اوددرختي لاندي یاپه کښت یاپه داسي سایه لرونکی ځای کي چیرته چي خلک کښیني مکروه دي ،همداشان په مسجد،عیدګاه ،هدیره ،دڅارویوپه منځ کي ،په ابادولاروکي، بادته مخامخ ،دمار،میږیانووغیره په غارونوکي ،دڅاپه لاره کي ،دڅادناستي پرځای ،دلاري په څنډه کي ،قافلي یاخیمي ته نژدي اوکښته په کښنستلواوپورته طرف ته بولي کول اودبولوپه حالت کي خبري کول مکروه دي (والتفصیل فی الدرالمختار: ۱/۲۵۲)

## كتاب الصلاة

### دا كتاب دلمانځه دا حكامو په بيان كې دى

كله چې مصنف رحمه الله دمفتاح اووسيلې (يعني پاكى) له بيان څخه فارغ شونو يې په مقصود يعني د لمانځه په بيان شروع وكړه. دصلوة لغوى معنى دعاده قال الله تعالى وَصَلِّ عليهم (أي ادع لهم) إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَهُمْ (يعنى ته دد ئ لپاره دعا وكړه بې شكه ستادعاددوئ لپاره داطمينان موجب ده).اودشريعت په اصطلاح كې دافعال مخصوصه نوم دى چې له تكبير څخه شروع كيږي او په سلام ختميږي اركان مخصوصه ته ددعا ويلووجه داده چې اركان مخصوصه په دعامشتمل دي.

لمونځ پرهرمكلف باندي فرض دى مگرماشومانو ته به له اوه كلنى څخه دلمانځه امركيږي او په لس كلنى كې به دلمانځه په نه كولوسره په لاس وهل كيږي نه په لرگى سره ،اودلمانځه منكر كافردى او په قصدسره پريښودل يې فسق دى اوپريښودنكى به وهل كيږي اوبندي كيږي به ترڅوچې لمونځ كول شروع كړي .دلمانځه دشرائطواوار كانوتفصيل په كتاب كې ذكرشوى دى دلمانځه حكم په دنياكې له ذمې څخه دواجبوساقطول ديي او په اخرت كې ثواب حاصلول دي.

ف:مجموعه پنځه لمنځونه ددي امت خصوصيت دى له عشاء څخه ماسواپاتې څلورلمنځونه په مخكنيو امتونوكې په متفرق ډول سره موجودوو په بذل المجهودكې حضرت مولاناخليل احمد سهارنپورى رحمه الله دحضرت عائشه رضي الله عنها روايت نقل كړى دى چې دحضرت ادم عليه السلام توبه چې كله دصبح صادق پروخت قبوله شوه نوده دوه ركعته لمونځ وكړ په دي ډول سره دسهارلمونځ مشروع شو اودحضرت اسماعيل عليه السلام فديه دماپښين په وخت راغلي وه چې په هغي سره ده څلورركعته دشكرانې په ډول اداكړي وو له دي وخت څخه دماپښين لمونځ مشروع شو اوحضرت عزيرعليه السلام له اوږده خوب څخه سل كاله وروسته دمازديگرپه وخت راويښ كړاى شو په دي ده څلورركعته اداكړل نوپردي دمازديگر لمونځ مشروع شواودحضرت داؤدعليه السلام لغزش دماښام پروخت معاف شونودى دڅلورركعتونوداداكولوپه نيت ودريدومگردشدت حزن اوستړيا له كبله پردريم ركعت كښينوست اوڅلورم ركعت يې ونه شوكړاى له دي وخت څخه دماښام دري ركعته مشروع شول اودماخستن لمونځ ترټولومخكې زموږنبى ﷺ اودده امت اداكړ.(الدر المنضود: ۲/۳)

**الحكمة**:ان من حكم الصلوة وجود الاطمينان في القلب فلايجزع عندنزول المصائب ولايمنع الخير اذاوافق اليه لان الجزع ينافي الصبر الذى هومن افضل اسباب السعادة ولان منع الخير عن الناس مضرة كبرى وعدم الثقة بالخالق الرازق المخلف ماينفقه الانسان في سبيل البروالاحسان ولذاقال الله تعالى ان الانسان خلق هلوعا اذامسه الشرجزوعا واذامسه الخيرمنوعا الاالمصلين (حكمة التشريع)

(۱)وَقْتُ الْفَجْرِ مِنَ الصُّبْحِ الصَّادِقِ إِلَى طُلُوعِ الشَّمْسِ (۲)وَالظُّهْرِ مِنَ الزَّوَالِ إِلَى بُلُوغِ الظِّلِّ مِثْلَيْهِ سِوَى الْفَيْءِ (۳)وَالْعَصْرِ مِنْهُ إِلَى الْغُرُوبِ

**ترجمه**:دسهاروخت له صبح صادق څخه بيادلمرترختلوپوري دى اودماپښين وخت له زوال څخه بيادهرشى دسايې ترد وچنده كيدلوپوري دى له سايه اصلي څخه ماسوا اودمازديگروخت دسايې نه دوچندى څخه ترلمرلويدلوپوري

**تشريح**: څرنګه چې دلمانځه وختونه دلمانځه دوجوب لپاره اسباب اودلمانځه داداکيدلولپاره شرط دي اوسبب له مسبب څخه اوشرط له مشروط څخه مخته وي په دي وجه دلمانځه دوختونويبان مخته کړای شويامصنف صاحب رحمه الله دسهاردلمانځه وخت په دي وجه له نوروو ختونو څخه مخته ذکرکړچې دادورځې اول لمونځ دی اوپه دي وجه هم چې دااول لمونځ دی چې له خوب څخه په راويښدونکې باندي فرض دی.

**ف**: فجرصادق هغه سپين والی دی چې په پلنواله سره داسمان په کناروکې خپريږي اوفجرکاذب هغه سپين والی دی چې له فجرصادق څخه مخکې پراسمان په اوږدوالی سره ښکاريږي اوبياله هغه وروسته تياره راځي له فجرکاذب وروسته په رمضان کې خوراک ،څښاک اوجماع کول ممنوع نه دي لقوله ﷺ ﴿لايغرنكم أذان بلال ولا الفجر المستطيل إنما الفجر المستطير في الأفق﴾ (دبلال اذان اوفجرمستطيل تاسې دوکه نه کړي فجرصادق هغه دی چې منتشروي په افق کې.

( ۱ )دسهاردلمانځه وخت له فجرصادق څخه شروع کيږي اودپه طلوع افتاب ختميږي لقوله ﷺ امني جبريل عندالبيت مرتين ............وصلى بي الفجر حين طلع الفجر............وصلى بي الفجر حين طلع الفجر واصفر وكادت الشمس ان تطلع ثم قال يامحمدهذا وقتك ووقت الانبياء من قبلك والوقت مابين هذين الوقتين (يعنی جبريل عليه السلام دوه ځله په بيت الله کې زما امامت وکړاوله ورځ چې څنګه سهارشواودوهمه ورځ چې سهارشواورڼاشوه اونژدي وو چې لمرراوخيږي ،اخرحديث کې يې وفرمايل ای محمده داستاوخت دی اوستاڅخه دمخکنيوانبياوو وخت دی اودسهاروخت ددي دوو وختونوپه منځ کې دی يعنی له طلوع فجرڅخه بياترلمرختوپوري دی )

( ۲ )والظهرمن الزوال الخ ای وقت الظهرمن زوال الشمس الخ ،يعنی دماپښين اول وخت دلمردزوال څخه وروسته شروع کيږي ولی چې جبريل عليه السلام دماپښين لمونځ په اوله ورځ په دغه وخت کې ورکړی وو كماقال ﷺ وصلى بي الظهر في اليوم الاول حين زالت الشمس (يعنی جبريل عليه السلام ماته دماپښين لمونځ راکړکله چې لمرزائل شو ).

دماپښين داخروخت په باره کې داحنافواختلاف دی دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدله فئ زوال (اصلی سايه )څخه ماسواچې دهرشی سايه دوه برابره شي نودماپښين وخت ختم اودمازديګروخت شروع کيږي ،دصاحبين رحمهما الله په نزدله فئ زوال څخه ماسواچې دهرشی سايه يوبرابرشي نودماپښين وخت ختميږي دصاحبينودليل حديث جبريل دی كماقال ﷺ وصلى بي الظهر في اليوم الثاني حين زالت الشمس وصار ظل كل شئ مثله (يعنی دوهمه ورځ چې کله لمرزائل شواودهرشی سايه يومثل شوه نوجبريل عليه السلام ماته دماپښين لمونځ راکړ).

دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دحضرت ابوسعيدخدری رضي الله عنه حديث دی ﴿ أبردوا بالظهر فإن شدة الحر من فيح جهنم ﴾(يعنی دماپښين لمونځ په يخ وخت کې کوئ ځکه چې دګرمی تيزوالی دجهنم دګرمی دتيزوالی له کبله دی )داستدلال وجه داده چې رسول الله ﷺ دماپښين دلمانځه په يخ وخت کې دکولوامرکړی دی اودعربوپه ښاروکې دسايه ديومثل کيدوپه وخت کې سخته ګرمی وي لهذاثابته شوه چې نبی کريم ﷺ له يومثل څخه وروسته دماپښين دلمانځه دکولوحکم کړی دی.

ف:صاحب درمختارفرمائي چې فتوادصاحبينوپرقول ده لمافي شرح التنوير:وعليه العمل اليوم وبه يفتى (ردالمحتار:۱/۲٦۳) مګرعلامه شامي دډيروعلماوو په اقوالوسره دامام صاحب قول راجح ګڼلی دی کمافي الشاميه (قوله الى بلوغ الظل مثليه) هذاظاهر الرواية عن الامام وهو الصحيح بدائع ومحيط وينابيع وهو المختار غياثيه واختاره الامام المحبوبي وعول عليه النسفي وصدر الشريعة تصحيح قاسم واختاره اصحاب المتون وارتضاه الشارحون فقول الطحاوي وبقولهمانأخذلايدل على انه المذهب ومافي الفيض من انه يفتى بقولهمافي العصر والعشاء مسلم في العشاء فقط ولم يظهر ضعف دليل الامام بل ادلته قوية (قوله وهو نص في الباب) فيه ان الأدلة تكافأت ولم يظهر ضعف دليل الامام بل ادلته قوية ايضاكمايعلم من مراجعة المطولات وشرح المنية وقدقال في البحر لايعدل عن قول الامام الى قولهما اوقول احدهما الالضرورة من ضعف دليل اوتعامل بخلافه كالمزارعة وان صرح المشائخ بأن الفتوى على قولهما كماهنا(ردالمحتار:۱/۲٦۳)مګربنه خبره داده چې دماپښين لمونځ له مثلين څخه مخکې اداء کړای شي اودمازديګرلمونځ له مثلين څخه وروسته ترڅوهريولمونځ باجماع الائمه صحيح اوپه خپل وخت کې اداشي اوکه دماپښين لمونځ په مثل اول کې ادانه شونوپه مثل ثاني کې اداء کول جائزدي لماقال العلامة الشامي ايضا:اوالاحسن مافي السراج عن شيخ الاسلام ان الاحتياط ان لايؤخرالظهرالى المثلين وان لايصلي العصرحتى يبلغ المثلين ليكون مؤدياللصلوتين في وقتهمابالاجماع (حواله بالا).

ف: ځيني وختونه څوک له مثل اول څخه وروسته په سفرځي که چيرته ده لره داوهم وي چې له ماښام څخه مخکې شايدبس يااورګاډی ونه دريږي ياخودريږي مګردلمونځ داداءکولوموقع په لاس رانه شي لکه چې بنځوته اکثردامشکل پيښيږي نوپه داډول حالت کې که داشخص دمازديګرلمونځ په مثل ثاني کې وکړي نوبايدچې جائزشي خصوصادهغوعلماوپه نزدکوم چې دصاحبينوقول مفتی به ګڼي لکه څرنګه چې حضرت مفتي رشيداحمدلدهيانوي دحرمين شريفين دفضليت دحاصلولوپه خاطرپه مثل ثاني کې دمازديګردلمانځه په جماعت سره داداءکولوفتوااورکړي ده اوپه فتاوی محموديه کې راغلي دي چې په حرمينوشريفينوکې داحنافودعلماوعمل پرهمدې ډول دی اوپه محموديه کې دوهم ځای ليکل شوي دي اوپه همدې وخت (مثل ثاني )کې داداء شوي لمانځه (دمازديګردلمانځه )اعاده لازمه نه ده .(احسن الفتاوی:۲/۱۴۵. فتاوی محموديه :۵/۳۳۸،۳۴۱)

ف :له زوال څخه لږمخکې چې کومه سايه وي هغې ته فئ ويل کيږي ولې چې داسايه له مغرب څخه دمشرق لورته راګرځيدلې ده ، دفئ زوال دمعلومولوطريقه داده چې اول بايدځمکه هواره کړای شي چې په دې کې لوږوږه پاته نشي بياپه همدې هواره ځمکه باندې يولرګی ښخ کړای شي اوترکومه ځايه چې سايه رسيږي په هغه ځای نښان ولګول شي نوترڅوچې له نشان لګول شوي ځای څخه سايه کميږي نوداله زوال څخه مخکې وخت دی اوکله چې دلرګی سايه ودريږي نه کميږي اونه لويږي نوداقيام شمس وخت دی په دې وخت کې چې کومه سايه موجوده وي هغه فئ زوال اواصلي سايه ده اوله دې وروسته چې کله سايه دوهم لورته لويږي نودادزوال شمس علامت دی له دې وخت څخه دماپښين دلمانځه وخت شروع کيږي والتفصيل في الشاميه:۱/۲٦۵)

(۳)والعصرمنه اى ووقت العصرمن بلوغ الظل كل شئ مثله ،يعني د مازديګر اول وخت دماپښين دوخت له ختميدلوڅخه وروسته شروع کيږي خواه که دماپښين وخت په دوه مثله ختميږي لکه څرنګه چې دامام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دی اوخواه که په يومثل ختميږي لکه چې دصاحبينومذهب دی اودمازديګر اخری

وخت ترلمرلويدوپوري دی ﴿ لقوله ﷺ من أدرک رکعة من العصر قبل أن تغرب الشمس فقد أدرک العصر﴾(یعنی که چایورکعت له لمرلويدوڅخه مخکې وموندنو دعصروموندی ) معلومه شوه چې دعصراخري وخت ترلمرلويدلوپوري دی.

ف:حسن ابن زیاد رحمه الله له امام صاحب رحمه الله څخه نقل کوي چې کله دهرشي سايه يومثل شي نود ماپښين وخت ختمیږي مگرترڅوچې دهرشی سایه دوه مثله نه شي دمازديگروخت نه داخلیږي ددي روايت مطابق دماپښين او مازديگر دوختونوپه منځ کې وخت مهمل دی لکه چې دظهراوفجرپه منځ کې وخت مهمل دی په داسې حال کې چې علامه شبيراحمدعثمانی رحمه الله فرمائي چې په دي روايت کې له خروج وخت څخه هغه وخت مختارمراددی کوم چې بې له څه شک اوشبهې څخه معمول به دی لماقال:فلعل المرادبخروج وقت الظهرخروج وقتهاالمختار المعمول به بلادغدغة(فتح الملهم باب اوقات الصلوة الخمس:۳/۳۰۵)

(۴)وَالْمَغْرِبِ مِنْهُ إِلَى غُرُوبِ الشَّفَقِ وَهُوَ الْبَيَاضُ (۵)وَالْعِشَاءِ وَالْوِتْرِ مِنْهُ إِلَى الصُّبْحِ وَلَا يُقَدَّمُ عَلَى الْعِشَاءِ لِلتَّرْتِيبِ (۶)وَمَنْ لَمْ يَجِدْ وَقْتَهُمَا لَمْ يَجِبَا

**ترجمه**:اودمغرب وخت له لمرلويدوڅخه دشفق ترلويدوپوري اوهغه سپين والی دی ،اودعشاء اووترووخت له غروب شفق څخه ترسهاره دی اووتردي نه مخته کوي پرعشاء دترتيب له کبله ،اوکوم شخص چې ونه مومندي دعشاء اووترووختونوپرده دادواړه واجب نه دي.

**تشريح** :(۴)قوله والمغرب عطف علی العصر ای اول وقت المغرب من غروب الشمس الخ،دماښام اول وخت له لمرلويدلوڅخه وروسته شروع کیږي کماقال ﷺ وصلی بی المغرب حین غاب الشمس (یعنی جبریل علیه السلام ماته دماښام لمونځ راکړپه داسې وخت کې چې لمرلويدلی وو )دماښام په اول وخت کې دهیڅ اختلاف نشته،ټول ائمه پردي متفق دي چې له لمر لويدلوڅخه وروسته شروع کیږي اودماښام اخري وخت تردي وخته دی چې ترڅوشفق نه وي ورک شوی ،دامام شافعی رحمه الله په نزددماښام وخت صرف دومره دی په څومره اندازه وخت کې چې ته اودس ،اذان ،اقامت اوپنځه رکعته لمونځ اداء کړای شي ،

دشفق په باده کې دائمه و اختلاف دی دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدشفق هغه سپین والی دی چې له سوروالی څخه وروسته داسمان پرڅنډوراځي همداقول دحضرت صدیق اکبر ،حضرت معاذ ،حضرت انس ،اوحضرت زبير رضي الله عنه دی دصاحبينو رحمهما الله په نزدله سپين والی څخه مخکې دسوروالی نوم شفق دی دصاحبينودليل دنبی کريم ﷺ داارشاددی ،الشفق هوالحمرة (چې شفق سوروالی دی)دامام ابوحنیفه رحمه الله دليل هغه روايت دی کوم چې حضرت ابوهريرة رضي الله عنه روايت کړی دی ﴿ان النبی ﷺ قال وآخر وقت المغرب إذا اسودّ الأفق﴾ (دماښام اخري وخت چې کله افق تورشي ) اوښکاره خبره ده،چې پرافق توروالی له سپين والي څخه وروسته راځي نوثابته شوه چې ترسپين والی پوري دماښام وخت شته.

ف:دمفتی به قول مطابق دشفق احمرپه غروب سره دماښام وخت پای ته رسيږي اودماخستن وخت شروع کیږي دامام ابوحنیفه رحمه الله اخری قول هم همدادی اوائمه ثلاثه هم دهمدي قائل دي قال فی شرح التنویر(و)وقت (المغرب منه الی )غروب (الشفق وهوالحمرة)عندهماوبه قالت الثلاثة واليه رجع الامام کمافی شروح المجمع وغيرهافکان هوالمذهب ،وقال ابن عابدين رحمه الله (قوله واليه رجع الامام )ای الی قولهماالذی هوروایة عنه ایضا......لکن تعامل الناس اليوم فی عامة البلادعلی

قولهما وقدأيده في النهر تبعاللنقاية والوقاية والدرر والاصلاح ودرر البحار والامداد والمواهب وشرحه البرهان وغيرهم مصرحين بانه عليه الفتوى.(الدر المختار مع ردالمحتار:۱/۲۶۵)

ف:احتياط دادى چې دمابنام لمونځ دسوروالى له ختميدلوځخه مخکې اداء شي اودماخستن لمونځ دسپين والى له ختميدلوځخه وروسته اداء شي ځينې خلک له لمرلويدلوځخه شل پنځه ويشت منټه وروسته دمابنام وخت وتلى ګڼي ځينې وختونه په بس ياګاډى کې څه ناوخته شي نولمونځ نه کوي مګرحقيقت دادى چې دمابنام وخت دموسم اوعلاقوپه اعتبارسره لړاوډيروي ترډي اندازې چې په ځينوعلاقوکې يوساعت اوپه ځينوکې ترساعت لاهم زيات وخت وي په دي وجه بنه داده چې ددائمي نقشې مطابق لمونځ اداکړاى شي .(فتاوى عثمانى:۱/۳۶۱)

(۵)قوله والعشاء والوتراى اول وقت العشاء والوترمن غروب الشفق ،دعشاء اول وخت دشفق له پټيدلوځخه وروسته شروع کيږي کماقال ﷺ وصلى بى العشاء حين غاب الشفق (يعنى حضرت جبريل عليه السلام ماته دماخستن لمونځ راکړکله چې شفق غائب شو)دعشاء اخرى وخت ترڅوچې سهارنه وي راختلى ولى چې دعشاء داخرى وخت په باره کې له نبى کريم ﷺ ځخه مختلف روايات مروى دي يوروايت دادى چې ده ترثلث الليل پورې دعشاء لمونځ مؤخرکړ،يوروايت دادى چې ده ﷺ ترنيمې شپې دماخستن لمونځ مؤخرکړ،يوروايت دادى چې ده دشپې ددوحصوترتيريدلوپورې دماخستن لمونځ مؤخرکړنوددي رواياتوله مجموعې ځخه ثابتيږي چې ټوله شپه دماخستن دلمانځه وخت دى .

ف:دنبى کريم ﷺ داحديث چې امنى جبريل عليه السلام عندالبيت مرتين الخ دايواوږدحديث دى بنده داتقسيم کړاو دمختلفو وختونوددليل په ډول يې وړاندې کړټول حديث يې يوځاى ذکرنه کړڅه حصې يې پاته شوې .

دوترپه اول وخت کې اختلاف دى څرنګه چې دصاحبينوپه نزددماخستن له لمانځه ځخه وروسته دوتروخت شروع کيږي اودفجرصادق ترطلوع پورې وي اودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدچې دماخستن دلمانځه کوم وخت دى هغه دوتروخت دى دصاحبينودليل دنبى کريم ﷺ داارشاددى فصلوهامابين العشاء الى طلوع الفجر(يعنى وتردماخستن اوسهارپه منځ کې کوئ )دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادى چې وترعملافرض دي اوقاعده داده چې کله دوه واجب لمونځونه سره جمع کړي نوداوخت دواړولمونځونووخت وي لکه چې قضاء شوي اووختي لمونځونه .

ف :دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دى مګرپرامام ابوحنيفه رحمه الله دااعتراض دى چې بيادوتروتقديم پرعشاء ولى جائز نه دى ؟ ځواب:په وترواوعشاء کې ترتيب واجب دى چنانچه که چيرته وترقصدا دماخستن ترلمانځه مخته اداکړاى شول نوبالاتفاق دوترواعاده لازمه ده اوکه په هيره سره داسې وشول نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددوترواعاده نشته ولى چې هيره ترتيب ساقطوي لمافى شرح التنوير(و)وقت (العشاء والوترمنه الى الصبح و)لكن (لا)يصح ان (يقدم عليهاالوتر) الاناسيا(لوجوب الترتيب)لانهمافرضاعندالامام ,قال ابن عابدين رحمه الله لكن العشاءفطعى والوترعملى(ردالمحتار:۱/۲۶۶)

ف:دااختلاف مبنى دى دوترصفت پراختلاف باندې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدوترواجب دي نوددوئ له ماخستن سره يوځاى والى داسې دى لکه ددوفرضولمونځونوپه يوه وخت کې يوځاى والى لکه دقضاء

شویواووختي لمونځونوپه یوه وخت کې یوځای والی اودصاحبینوپه نزدوترسنت دي له ماخستن وروسته مشروع دي نودوئ دعشاء وروسته ددوو سنتونوپه څیردي ،اصح داده چې وترواجب دي لمافی شرح التنویر (هوفرض عملاوواجب اعتقاداوسنة ثبوتا) (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار: ۱/۴۹۰)

(۶)قوله ومن لم یجدوقتهمااي من لم یجدوقت الوتروالعشاء، یعنی که څوک په یوه داسي وطن کې اوسیږي چې په هغه کې ده ته دعشاء اووتروخت ورپیدانه شي په دي وجه چې له لمرلویدوسره سمدستي صبح صادق راختلومثلابلغاریة وغیره کې، چې هلته دیخنی په موسم کې څلویشت ورځي همداشان وي نوپردي شخص دادواړه لمونځونه فرض نه دي ولی چې دده په حق کې سبب وجوب یعنی وقت نشته.

ف:مروی ده چې دبلغاریه په باره کې شمس الائمة حلوانی ته استفتاء راغله چې هلته دیخنی په موسم کې دماخستن وخت نه وي نودهغه ځای داوسیدونکولپاره دماخستن دلمانځه څه حکم دی ؟علامه حلوانی ځواب ورکړچې هغه خلک به دماخستن دلمانځه قضاء راوړي ،بیادااستفتاء په خوارزم کې شیخ کبیرسیف الدین بقالی ته راغله هغه ځواب ورکړچې دهغه ځای په خلکودماخستن لمونځ واجب نه دی ،بیاداځواب علامه حلوانی ته ورسید وهغه علامه بقالی ته یوکس ورولیږوچې دخوارزم په جامع مسجدکې دعام مجمع په مخ کې له علامه بقالی څخه داپوښتنه وکړه چې که کوم شخص له پنځو لمونځونوڅخه یوساقط کړي اودڅلورودفرضیت قائل وي نوایاداشخص کافردی اوکه مسلمان ؟ قاصدولاړی اوهمداشان سوال یې وکړ،علامه بقالی پوه شواوویې فرمایل دداسي کس په باره کې به څه وایې چې لاسونه یې له څنګلوسره پري شوي وي نوایادده داوداسه فرض څلوردي اوکه دري ؟هغه وویل دري ولی چې دڅلورم فرض محل فوت شوی دی علامه بقالی وویل همداحکم دپنځولمونځونوهم دی ،قاصدعلامه بقالی داځواب علامه حلوانی ته ورساوو دهغه ډیرخوښ شواودموافقت اعلان یې وکړ.

ف:مګرمفتی به قول دفرضیت دی لکه چې صاحب دفتاوی حقانیه دیوسوال په ځواب کې لیکلي دي : چیرته چې دلمرنه لویدلوله کبله دشپي اوورځي فرق کول ناممکن وي نودنژدي هیوادونو دوختونوداعتبارکولوسره په څلوریښت ساعتونو کې دپنځو لمونځونواهتمام کول ضروري دی ،اوکه چیرته دسفرپه حالت کې (مثلاطیاره دمغرب په لورروانه وه) وقت اوږدشي مګردلمر لویدل ممکن وي نوبیادلمرپه لویدوکي ځنډله کبله دلمانځه په وختونوڅه نه اثرنه پریوځي ،قال الحصکفي:(وفاقدوقتهما) کبلغارفان فیهایطلع الفجرقبل غروب الشفق في اربعینة الشتاء مکلف بهمافیقدرلهماولاینوی القضاء لفقدوقت الاداء به افتی البرهان الکبیرواختاره الکمال وتبعه ابن شحنة في الغازه فصححه فزعم المصنف انه المذهب (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار: ۱/۳۶۲) (حقانیه: ۳/۳۷)

(۷)وَنُدِبَ تَأْخِيرُ الْفَجْرِ وَظُهْرِ الصَّيْفِ (۸)وَالْعَصْرِ مَالَمْ تَتَغَيَّرِ الشَّمْسُ (۹)وَالْعِشَاءِ إِلَى الثُّلُثِ (۱۰)وَالْوِتْرِ إِلَى آخِرِ اللَّيْلِ لِمَنْ يَثِقُ بِالانْتِبَاهِ (۱۱)وَتَعْجِيلُ ظُهْرِ الشِّتَاءِ وَالْمَغْرِبِ (۱۲)وَمَا فِيهِمَا غَيْمٌ يُعَجِّلُ وَلِلْآخِرِ غَيْرُ ذَلِكَ

**ترجمه** :اومستحب ده تاخیره فجراوپه ګرمی کې دظهر،اودعصرترڅوچې لمرمتغیرنه شي اوعشاء ترثلث دشپي پوري، اووترتراخردشپي پوري دهغه شخص لپاره چې ده لره اعتمادوي په راویښیدلو، او(مستحب ده )وختي اداکول دژمی دماپښین اودمابنام، اوهغه لمونځونه چې په هغوئ کې عین دی دوریځې په ورځ ،اوپه تاخیرسره دي اداء کړي له دي ماسوانورلمونځونه په دي ورځ.

**تشريح** :كله چې مصنف رحمه الله دمطلق وختونوله بيان څخه فارغ شونواوس يې دكامل وخت (يعنى مستحب )وختونوپه بيان شروع وكړه .

(۷)داحنافوپه نزددسهارلمونځ په اسفار(رڼا)كې شروع كول اوپه اسفاركې ختمول مستحب دى ﴿لقوله ﷺ اسفروابالفجرفانه أعظم للأجر﴾(يعنى دسهارلمونځ په اسفاركې اداء كوئ په دې وجه چې هغه دثواب په اعتبارسره اعظم دى)اوهمدارازپه اسفارفجركې دتكثيرجماعت فائده هم شته .

ف:داسفارحددادى چې له سپين والى خپريدلووروسته په قرأت مسنونه سره لمونځ شروع كړاى شي بياكه له فراغت وروسته ته داوداسه فسادښكاره شي نواودس وكړاى شي اوله لمرختلوڅخه مخكې دسهارلمونځ اداء كول په داسې ډول سره ممكن وي چې له په هغه كې له څلويښتوڅخه بياترشپيتوپورې ايتونه په ارام سره وويل شي لمافى العلاية: بحيث يرتل اربعين اية ثم يعيده بطهارة لوفسد(الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۱/۲۶۹)

ف:داسفارحكم دنارينه ولپاره دى دښځولپاره ښه داده چې په تياره كې لمونځ اداء كړي ولى چې په دې كې ددوئ لپاره سترپوشي ډيره ده اوله فجرڅخه ماسواپه دانورولمونځوكې دانتظاركوي ترڅونارينه له جماعت څخه فارغ شي لمافى شرح التنوير :فالتغليس افضل كمراة مطلقاوفى غيرالفجرالافضل لهاانتظارفراغ الجماعة (ردالمحتار:۱/۲۶۹)

ف:دامام شافعى رحمه الله په نزدپه هرلمانځه كې تعجيل افضل دى لحديث ام فروة رضي الله عنها قالت سئل رسول الله ﷺ اى الاعمال افضل قال الصلوة فى اول وقتها(يعنى له نبى كريم ﷺ څخه يوچاپوښتنه وكړه چې په اعمالوكې كوم عمل غوره دى نبى كريم ﷺ ارشادوفرمايوچې په لمونځ په اول وخت كې اداء كول ).

قوله والظهر الصيف ،يعنى دماپښين لمونځ دگرمى په موسم كې په يخنى كې اداء كول مستحب دي ﴿لرواية انس رضي الله عنه قال كان النبى ﷺ اذاكان فى الشتاء بكربالظهر واذاكان فى الصيف ابردبها ﴾ (يعنى نبى كريم ﷺ كله چې به ديخنى موسم وو نودماپښين لمونځ به وختى كاوه اوكله به چې دگرمى موسم وو نوپه يخنى كې به يې اداء كاوو)داحكم دمنفرداوپه جمع سره دلمانځه اداء كونكې دواړولپاره برابردى اودگرم اويخ دواړه قسمه هيوادانولپاره دى مگردتاخيراندازه داده چې لمونځ دهرشى سايه له يومثل كيدلوڅخه مخكې اداء كړاى شي .

(۸)قوله والعصرمالم تتغيرالشمس اى وندب تاخيرالعصرمالم تتغيرالشمس ،يعنى دعصرلمونځ په هرموسم كې په تاخيرسره اداء كول مستحب دي په دې شرط چې لمرمتغيرنه شي ولى چې كه دعصرلمونځ په تاخيرسره اداء كړاى شي نودعصردلمانځه څخه مخكې دډيرنوافلوداء كولوگنجائش وي اودلمانځه په اول وخت كې له اداء كولوڅخه تكثيرنوافل افضل دى .

ف:دلمرله تغيرڅخه مراددلمردټكى متغيركيدل دى يعنى چې لمرپه داسې حال كې شي چې ده ته دكتونكې سترگې خيره نشي بلكه دكتونكې نظرپه لمرباندى يوځاى شي ،اولمرپه هغه وخت كې متغيروي چې كله چې لمرله لويدوڅخه ديوې نېزې څخه په لړه فاصله كې وي اوكه ديوې نيزې په اندازه ولاړوو نومتغيرنه دى ،دځينوحضراتورأيه داده چې له تغيرشمس څخه مرادپه ديوالونوچې دلمركومه رڼاپريوځي هغه متغيره شي

مگر دا صحيح نه ده ولې چې د اخوله زوال څخه وروسته شروع كيږي لما في التنوير و شرحه: ما لم يتغير ذكاء بان لا تحار العين فيها في الاصح، قال ابن عابدين وفي الظهيرية ان امكنه اطالة النظر فقد تغيرت وعليه الفتوى (الدر المختار مع الشامية: ١/٢٧٠)

(٩) قوله والعشاء الى الثلث عطف على العصر اى ندب تاخير العشاء الى الثلث ، يعني د عشاء لمونځ تر دريمې حصې د شپې پورې مؤخركول مستحب دي لقوله ﷺ ﴿لولا أن أشق على أمتي لأخرت العشاء إلى ثلث الليل﴾ (يعني كه دامت لپاره شاق نه واى نو ما به د عشاء لمونځ تر ثلث ليل پورې مؤخر كړى واى).

ف :دعشاء لمونځ ترنصف ليل پورې مؤخركول مباح دي او له نيماى څخه زيات مكروه تنزيهي دي او همدا راز تر ثلث ليل پورې مؤخركول د يخنۍ د موسم حكم دى د گرمې په موسم كې وختي كول مستحب دي لما في شرح التنوير: (و) تاخير (عشاء الى ثلث الليل) قيده في الخانية وغيرها بالشتاء اما الصيف فيندب تعجيلها (فان اخرها الى ما زاد على النصف) كره لتقليل الجماعة اما اليه فمباح وفي الشامية (قوله كره) اى تحريما.........اوتنزيها وهو الاظهر كما نذكره عن الحلبة (الدر المختار مع رد المحتار: ١/٢٧٠)

(١٠) والوتر الى اخر الليل الخ اى ويستحب تاخير الوتر الى اخر الليل ،يعني چا لره چې د تهجد د لمانځه د كولو عادت وي او ده له له سهار څخه مخكې په راويښيدلو اعتماد وي نو د لره مستحب دا دى چې وتر له تهجد څخه وروسته د شپې په اخير كې وكړي او چا لره چې له سهار څخه مخكې په راويښيدلو اعتماد نه وي نو هغه دي له ويده كيدلو څخه مخكې وتر وكړي لقوله ﷺ ﴿من خاف ان لا يقوم آخر الليل فليوتر اول الليل ومن طمع ان يقوم آخر الليل فليوتر آخر الليل﴾ (يعني چا لره چې ويره وي چې د شپې په اخرنۍ حصه كې نشم راويښيدلى نو هغه دي په اول د شپې كې وتر وكړي او چا لره چې اميد وي چې د شپې په اخرنۍ حصه كې راويښيدلى شم نو هغه دي د شپې په اخرنۍ حصه كې وتر وكړي).

ف :د تهجد وخت د ماخستن له لمانځه څخه وروسته تر ټوله شپه ده مگر د تهجد لپاره ويده كيدل ضروري دي يعني ويده كيږي به او راويښيږي به او بيا به تهجد كوي بيا هم له ويده كيدلو څخه مخكې په نفل كولو سره د صلوة الليل او قيام الليل ثواب حاصليږي نه د تهجد ،البته كه د ستړيا له كبله او يا تر ډيره د مطالعې كولو له يا غيره كې د مصروفيت له امله د تهجد لپاره د نه راويښيدلو خطره وي نو له ويده كيدلو څخه مخكې دي د تهجد په نيت سره نفل وكړي او بيا دي د تهجد په نيت سره ويده شي ان شاء الله د تهجد ثواب به حاصل شي .(والتحقيق في الشامية :١/٥٠٦، واحسن الفتاوى ،٣/٤٦٨)

(١١) قوله وتعجيل ظهر الشتاء الخ عطف على قوله تاخير الفجر اى وندب تعجيل ظهر الشتاء الخ ،يعني د ظهر لمونځ د يخنۍ په موسم كې وختي اداء كول مستحب دي ﴿لرواية انس ﷺ قال كان النبي ﷺ اذا كان في الشتاء بكر بالظهر واذا كان في الصيف ابرد بها﴾ (يعني نبي كريم ﷺ كله چې به د يخنۍ موسم وو نو د ماپښين لمونځ به يې وختي اداء كاوو او كله چې به د گرمۍ موسم وو نو د ماپښين لمونځ به يې په يخنۍ (يعني ناوخته) اداء كاوو ، همدا شان د مغرب په لمانځه كې تلوار كول مستحب دي لقوله ﷺ لا يزال امتي بخير ما عجلوا المغرب واخروا العشاء (يعني زما امت به هميشه په خير وي ترڅو چې د مغرب لمونځ وختي اداء كوي او د عشاء لمونځ ناوخته اداء كوي).

ف : د مغرب دا حكم په هره زمانه كې دى البته كه وريځ وه نو بيا مؤخركول مستحب دى ترڅو چې په غالب گمان سره د لمر د لويدلو يقين راشي لكه څرنگه چې دا مسئله وړاندې په متن كې راروانه ده ،همدا راز به

په رمضان کې که لوږه وي او ډوډۍ تیاره وي نو بیا په لس پنځلس منټه تاخیر کولو کې څه مضائقه نشته په دې وجه چې د اتاخیر به زیات سې زیات مکروه تنزیهي وي او دلوږې په حالت کې چې ډوډۍ تیاره وي لمونځ کول مکروه تحریمي ده لهذا باید له خوراک څخه فارغه شي او په اطمینان او فراغ قلب سره لمونځ اداء کړل شي

لمافي شرح التنوير: (و) اخر (المغرب الى اشتباك النجوم) اى كثرتها (كره) اى التاخير لا الفعل لانه مامور به (تحريما) الا بعذر كسفر وكونه على اكل: قال ابن عابدين: (قوله وكونه على اكل) اى لكراهة الصلوة مع حضور طعام تميل اليه نفسه ولحديث اذا اقيمت الصلوة وحضر العشاء فابدؤا بالعشاء رواه الشيخان (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۱/۲۷۱)

قوله ومافيهاعين الخ اى وتعجيل صلوة التى فيها عين ،يعنى هرهغه لمونځ چې دهغه په نامه کې عين وي (يعنى عصراوعشاء) دوريځ په ورځ په هغه کې تعجيل مستحب دى په عصرکې دتعجيل وجه داده چې په تأخيركولوسره دعصرپه مکروه وخت کې دواقع کيدلوخطره ده ولى چې دعصراخري وخت مکره دى اوپه عشاء کې دتعجيل وجه داده چې دوريځ په ورځ په تأخير کولوسره په جماعت کې کموالى راځي ولى چې دباران له امله خلک سستي کوي له دې دوولمونځونوماسواپه نورولمونځونوکې دوريځ په ورځ تاخيرکول مستحب دي ولى چې دفجروخت طويل دى لهذا دطلوع افتاب په وخت دلمانځه دواقع کيدلووهم نشته اوپه ظهراومغرب کې تاخيرپه دې وجه مستحب دى چې په وختي اداء کولوسره يې له وخت څخه مخکې داداء کيدلوامکان دى لهذا تاخيرمستحب دى

**ف**:مګردوريځ په ورځ په ځينولمونځونوکې تلوارکول اوپه ځينوکې دځنډکولواستحباب نن صبانشته دادمخکنى زمانې خبره وه ولى چې نن صبادلمونځونووختونه په دائمي نقشواوګړيانوسره متعين دي نن صبادوريځ په ورځ هم داخطره نشته چې کوم لمونځ به له وخت څخه مخکې اداء شي يابه له خپل وخت څخه موخرشي.

(۱۳) وَمُنِعَ عَنِ الصَّلَاةِ وَسَجْدَةِ التِّلَاوَةِ وَصَلَاةِ الْجَنَازَةِ عِنْدَ الطُّلُوعِ وَالِاسْتِوَاءِ وَالْغُرُوبِ (۱۴) إِلَّا عَصْرَ يَوْمِهِ (۱۵) وَعَنِ التَّنَفُّلِ بَعْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَالْعَصْرِ (۱۶) لَا عَنْ قَضَاءِ فَائِتَةٍ وَسَجْدَةِ تِلَاوَةٍ وَصَلَاةِ جَنَازَةٍ (۱۷) وَبَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ بِأَكْثَرَ مِنْ سُنَّةِ الْفَجْرِ وَقَبْلَ الْمَغْرِبِ وَوَقْتَ الْخُطْبَةِ (۱۸) وَعَنِ الْجَمْعِ بَيْنَ صَلَاتَيْنِ فِي وَقْتٍ بِعُذْرٍ

**ترجمه**،اومنع کړل شوى ده له لمانځه څخه ،له سجده تلاوت څخه اوله لمانځه دجنازې څخه دطلوع افتاب په وخت، داستواء اوغروب افتاب په وخت ،مګرددغې ورځې دعصرلمونځ ،له نفل کولوڅخه دفجراوعصرله لمانځه وروسته ،نه له قضاء لمانځه څخه اوله سجدة تلاوة اودجنازې له لمانځه څخه ، او(منع شوې ده )له طلوع فجروروسته دوه رکعته سنت فجرڅخه له زياتوڅخه اوله مغرب څخه مخته اودخطبې پروخت ،او(منع شوې ده )ددوولمونځونوپه يووخت له جمع کولوڅخه ديوعذرله کبله ،)

**تشريح**،(۱۳)يعنى دطلوع افتاب پروخت اودزوال افتاب پروخت اودغروب پروخت دفرض لمانځه له کولوڅخه منع راغلي ده ﴿ لحديث عقبة بن عامر ﵁ ثلاث اوقات نهانا رسول الله ﷺ أن نصلي فيها وأن نقبر فيها موتانا عند طلوع الشمس حتى ترتفع وعند زوالها حتى تزول وحين تضيف للغروب حتى تغرب ﴾ (يعنى درې وختونه دي په کوموکې چې موږته دلمانځه اداء کولواودخپلومړوله دفن کولوڅخه نبى کريم ﷺ ممانعت فرمايلى دى يووخت دطلوع افتاب دى ترڅوچې لوړشي اودوهم وخت دزوال افتاب دى ترڅوچې زائل شي اودريم وخت دغروب افتاب دى

ترڅو چې غروب راشي) همداشان دجنازي لمونځ هم په دي وختونو کې جائزنه دی په دي شرط چې جنازه له دي وختونو څخه مخکې حاضره شوي وي اوکه په همدي وخت کې جنازه حاضره شوه نوجائزده اوسجده تلاوت څرنګه چې دلمانځه په معنی ده په دي وجه په دي وختونو کې سجدة تلاوت هم جائزنه ده .

ف: سجده تلاوت اودجنازي لمونځ په دي وختونو کې هغه وخت مکروه ده چې ایت سجده له دي وخت څخه مخکې تلاوت کړل شوي وي اوجنازه مخکې حاضره شوي وي اوکه په همدي وختونو کې تلاوت شوه اوی جنازه حاضره شوه نوجائزده لمافی مجمع الانهر: واماالمتلوة اوالحاضرة فيهالايكره اى تحريمالانهاوجبت ناقصة اديت فيهاكماوجبت (مجمع الانهر: ۱/۷۲) مګرییاهم سجدة تلاوت ترمستحب وخته موخرکول افضل دي ولی چې په تاخيرسره سجده نه فوت کیږي .

ف: سجده شکرپه دي وختونو کې اداء کول مکروه نه دي ولی چې سجده شکرله اوله څخه واجب نه ده چې داوویل شي چې کامل واجب په ناقص اداء سره نه اداء کیږي ،هوله لمانځه وروسته سجده شکربالاجماع مکروه ده لکه څرنګه چې په عواموکې رواج ده ولی چې خلک داواجب یاسنت ګڼي اوحال داده چې داسې نه ده اوقاعده ده چې هرهغه جائز عمل چې اعتقادوجوب یاسنیت ته مفضي وي هغه مکروه ده لمافی الشامية: واماليفعل عقب الصلوة من السجدة فمكروه اجماعالان العوام يعتقدون انهاواجب اوسنة اه اى كل جائز أدى الى اعتقادذالك كره (ردالمحتار: ۱/۲۷۳)

(۱۴)ليكن له پورته ذكرشوي قاعدي (يعنى دلمردلويدلوپه وخت كي دلمانځه دممانعت له قاعدي )څخه دهمدي ورځي دعصرلمونځ مستثنی دی یعنی که چادعصرلمونځ نه وي کړی تردي چې دغروب وخت شونوداشخص ددغې ورځې دعصرلمونځ دغروب افتاب پروخت اداء کولی شي ولی چې ددغي ورځې لمونځ ناقص واجب شوی دی په دي وجه چې دوجوب سبب دلمانځه داداء کولووخت دی اودعصرپه اخیروخت کې لمونځ کول منع ده لهذاپه دي وخت کې به دلمانځه وجوب هم ناقص وي نوله نقصان سره په اداء کولوهم اداء کیږي مګربل لمونځ یادبلي ورځې دعصرلمونځ په دي وخت کې اداء کول جائز نه دي ولی چې کوم لمونځ کامل واجب شي نودهغه ناقص اداء کول جائز نه دي .

(۱۵)قوله وعن التنفل اى ومنع ايضاعن التفل الخ،یعنی له فجرڅخه وروسته نفل کول مکروه دي ترڅو چې لمرراوخیژي اوله عصرڅخه وروسته نفل کول مکروه دي ترڅو چې لمرولویږي ﴿لحديث ابن عباس ﷺ ان رسول الله ﷺ نهى عن الصلوة بعدالصبح حتى تشرق الشمس وبعدالعصر حتى تغرب﴾ (يعنی نبی کریم ﷺ له سهارڅخه وروسته له لمانځه څخه منع وفرمایله ترڅو چې لمرروښانه شي اوله عصرڅخه وروسته ترڅو چې لمرولویږي ).

(۱۶)قوله لاعن قضاء اى لايمنع فى هذين الوقتين عن قضاء ،يعني په دي دوو وختونو کې دقضاء لمونځو نو ،سجده تلاوة اوجنازي په کولوکې څه مضائقه نشته ولی چې په دي دوو وختونو کې کراهت دفجراو عصر دلمانځه له کبله وو ترڅو چې تول وخت دهمدي وخت په فرضوباندي مشغول شي نوڅرنګه چې کراهت دحق فرض له امله وو نه حقیقتاپه فرضودمشغول والی له امله ،اوڅرنګه چې په قضاء وغیره کې حقیقتاپه فرضوباندي مشغول والی دی لهذاپه حقیقتا فرضوکې دمشغول کیدلوپه حق کې به کراهت دفرضودحق له کبله ښکاره نه شي ولی چې وخت حقیقتاپه فرضومشغول کول(یاپه هغه چې دواجب لعینه والی له امله

دفرضوپه معنی وي لکه سجده تلاوة ).اولی دي ترمشغول کولو دوخت په حق فرض سره ،همداشان دجنازي لمونځ هم دی که جنازه په دي وخت کي حاضره شي کمامر.

(۱۷)قوله وبعدطلوع الفجر عطف علی قوله بعدصلوة الفجر ای منع عن التنفل الخ،يعنی له طلوع فجرڅخه وروسته دفجرله دوور کعتو سنتوڅخه علاوه نورنوافل کول مکروه دي ولی چي له نبی کريم ﷺ سره له دي چي په لمانځه حريص وو څخه له دي دوو رکعتونوزيات ثابت نه دي نوترک مع الحرص دکراهت دليل دی ،همداشان له غروب افتاب څخه وروسته دمغرب ترلمانځه مخته هم نفل کول مکروه دي ولی چي دنفلو دکولوله امله دمغرب دلمانځه تاخيرلازميږي اوحال داچي دمغرب په لمانځه کي تعجيل مستحب دی همداشان دجمعي دخطبي دويناوغيره په وخت کي نفل کول مکروه دي ولي چي استماع خطبه فرض ده اونفل کول له استماع خطبه څخه مانع دي.

(۱۸)قوله وعن الجمع بين الصلوتين ای ومنع ايضاعن الجمع الخ،يعنی دوه لمونځونه دکوم عذرله کبله په يو وخت کي يوځای اداء کول ممنوع دي ولی چي حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمايي ﴿وَالَّذِي لَا إِلٰهَ غَيْرُهُ مَا صَلّٰى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةً قَطُّ إِلَّا لِوَقْتِهَا إِلَّا صَلَاتَيْنِ جَمَعَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِعَرَفَةَ وَبَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِجَمْعٍ﴾ (يعنی په هغه ذات قسم چي له هغه ماسوا ځوک معبودنشته چي نبی کريم ﷺ هميشه پروخت لمونځ اداء کړی دی ماسواله دوو لمونځونوچي ظهراوعصريي په عرفات کي جمع کړل اومغرب اوعشاءيي په مزدلفه کي).

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزددعذرمثلاباران، سفرياناروغی له امله ظهراوعصرجمع کول اومغرب اوعشاء جمع کول جائز دي ولی چي له نبی کريم ﷺ څخه دتبوک په سفرکي دظهراوعصراومغرب اوعشاء جمع کول ثابت دي ،احناف داجواب ورکوي چي په کوم ځای کي چي دناروغی ياسفرله کبله له نبی کريم ﷺ څخه جمع بين الصلوتين ثابت دي نوهغه په جمع صوری باندي محمول ده نه پرجمع حقيقي ،جمع صوري داده چي يولمونځ مؤخرکړي اوپه اخيروخت کي وکړي اودوهم لمونځ په اول وخت کي وکړي.

## باب الأذان

دا باب داذان په بيان کي دی.

اذان په لغت کي اعلام (خبرولو)ته ويل کيږي بيادلمانځه داعلان اواعلام لپاره غلبة استعمال شوپه همدي وجه چي کله هم داذان لفظ ويل کيږي نوله ده څخه مراددلمانځه اعلان وي اودشريعت په اصطلاح کي په خاصووختونوکي خاصوالفاظوسره خاص خبر(يعنی دلمانځه دوخت دداخليدوخبر) ورکولوته ويل کيږي ،اذان که څه هم په ځينووختونوکي دخبرورکولولپاره نه وي مثلادجمعي په ورځ دخطيب په مخکي اذان دخبرورکولولپاره نه وي مګرځرنګه چي اکثراذخبرورکولولپاره وي وللاکثرحکم الکل په بناء باندي وويل شول چي اذان مخصوص خبرورکولوته ويل کيږي.

بيادوختونوبيان داذان په بيان په دي وجه مخته كړاى شوچې وختونو اسباب دي اوسبب پراعلام باندې مخته وي ولى چې اعلام دمعلم به دوجودخبروركوي نودخبرور كولوڅخه مخكې دمخبربه يعنى دخول وخت وجودضروري دى ،اوهمداراز دوختونواثردخواصويعنى علماوپه حق كې دى اواذان دعواموپه حق كې اعلام دى اوخاص پرعام مخته وي په دي وجه مصنف دوختونوذكرمخته كړو.

(۱۹) سُنَّ لِلْفَرَائِضِ (۲۰) بِلَا تَرْجِيعٍ وَلَحْنٍ (۲۱) وَيَزِيدُ بَعْدَ فَلَاحِ أَذَانِ الْفَجْرِ الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ مَرَّتَيْنِ (۲۲) وَالْإِقَامَةُ مِثْلُهُ وَيَزِيدُ بَعْدَ فَلَاحِهَا قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ مَرَّتَيْنِ (۲۳) وَيَتَرَسَّلُ فِيهِ وَيَحْدُرُ فِيهَا (۲۴) وَيَسْتَقْبِلُ بِهِمَا الْقِبْلَةَ وَلَا يَتَكَلَّمُ فِيهِمَا (۲۵) وَيَلْتَفِتُ يَمِينًا وَشِمَالًا بِالصَّلَاةِ وَالْفَلَاحِ وَيَسْتَدِيرُ فِي صَوْمَعَتِهِ (۲۶) وَيَجْعَلُ إِصْبَعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ (۲۷) وَيُثَوِّبُ

**ترجمه**:اذان سنت دى دفرائضو لپاره ،بې له ترجيع اولحن څخه ،اوزياتوې دي له حى على الفلاح څخه وروسته دسهار په اذان كې الصلوة خيرمن النوم دوه ځله ،اواقامت داذان په شان دى بزياتوي دي په اقامت كې له حى على الفلاح وروسته قدقامت الصلوة دوځله ،اوداذان كلمي دسوكه سوكه ويل شي اوتلواردي كوي په اقامت كې ،اوپه دواړوكې دي مخ پرقبله ودريږي اوخبري دي نه كوي په دواړوكې ،اوخپل مخ دي بني اوكيڼ لورته ګرځوي په حى الصلوة اوحى الفلاح كې اوګرځې دي په اذان خانه كې ،اوايږدي دي دواړه ګوتې په غوږونوكې اوتثويب دي كوي.

**تشريح** :(۱۹)اذان دفرائضو يعنى پنځولمونځونو اودجمعي دلمانځه لپاره سنت موكده دى ولى چې داپه تواترسره ثابته ده چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم دپنځولمونځونو اوجمعي دپاره اذان كولوحكم كړى دى اوله دي ماسوا دوترو ،عيدينو ،كسوف ،خسوف، استسقاء ،جنازي،سننو اونوافلو لپاره يې دآذان كولو حكم نه دى كړى جمعه په پنځولمونځونو كې داخله ده مګرداخترله لمانځه سره مشابه ده په دي وجه يې ددي نوم ذكركړترڅوچاته وهم پيدانه شي چې داخترونو په څيرددي لپاره هم اذان نشته.

**ف**:دلمانځه څخه ماسواپه څونوروځايونوكې هم اذان مشروع دى (۱)دنوي پيداشوي په غوږكې (۲)دغمجن كس په غوږكې (۳)كله چې دمرګي په مريض باندي مركي عارض شي (۴)دغضب په وخت كې (۵)كله چې ديوانسان ياحيوان بدخلقى ښكاره شي (۶)دكفاروسره دجنګ په حالت كې (۷)كله چې شيطانان شكاره شي اوويرول كوي (۸)دمسافردرخصتولوپه مهال (۹)كله چې مسافرپه يوځنګل كې لاروركه كړي ،البته مړى قبرته دداخلولوپه وخت كې اذان كول بدعت دى لمافى الشامية :قديسن الاذان لغيرالصلوة كمافى اذن المولودوالمهموم والمصروع والغضبان ومن ساء خلقه من انسان اوبهيمة وعندمزدحم الجيش وعندالحريق وقيل عندانزال الميت القبرقياساعلى اول خروجه للدنيالكن رده ابن حجرفى شرح العباب وعندتغول الغيلان اى عندتمردالجن لخبرصحيح فيه القول ولابعدفيه عندنا.......وزادابن حجرفى التحفة الاذان والاقامة خلف المسافرقال المدنى اقول وزادفى شرعة الاسلام لمن ضل الطريق فى ارض قفراى خالية من الناس (ردالمحتار:۲۸۳/۱)

(۲۰)زموږپه نزدپه اذان كې ترجيع نشته ،ترجيع داده چې اول ځل شهادتين يعنى اشهدان لااله الاالله اواشهدان محمدارسول الله دوځله سوكه ووايې اوبيادوځله په لوړاوازسره وويل شي ،دادامام ابوحنيفه په نزدمسنون نه ده اودامام مالك اوامام شافعى په نزدپه اذان كې ترجيع سنت ده ددى دليل دحضرت ابومحذوره رضى الله عنه روايت دى چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم ده ته په همدي دول داذان

تعليم ورکړی وو .زموږدليل داده چې حضرت بلال رضی الله عنه دنبی کريم صلی الله عليه وسلم په مخ کې دنبی کريم صلی الله عليه وسلم تر وفات پورې په سفر او حضر کې بې له ترجيع څخه اذان کاوو ،اودنبی کريم صلی الله عليه وسلم حضرت ابومحذوره رضی الله عنه ته په دې دول داذان تعليم ورکول په دې وجه وو چې توحيد اورسالت دهغه په ذهن کې کښيني ولی چې هغه له اذان څخه مخکې کافروو کومه چې هغه ترجيع وفهموله .

(۲۱)دسهار په اذان کې له حی الفلاح څخه وروسته دوه ځله دالصلوة خير من النوم اضافه کيږي ولی چې حضرت بلال رضی الله عنه دسهار دلمانځه دپاره اذان وکړ بيا دحضرت عائشه رضی الله عنه دحجرې دروازې ته راغی اوويې ويل الصَّلَاةُ يا رَسُولَ الله ،حضرت عائشه رضی الله عنها وفرمايل إنَّ الرَّسُولَ نائِمٌ نو په خواب کې حضرت بلال رضی الله عنه وويل الصَّلَاةُ خيرٌ من النَّوْمِ ،کله چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم بيدار شو نو حضرت عائشه ﷺ ده ﷺ ته خبر ورکړ نبی کريم صلی الله عليه وسلم خوش کړ او ويې فرمايل ای بلال دا په خپل اذان کې شامل کړه .

(۲۲)داحنافو په نزد اقامت هم داذان په شان دی البته صرف دومره فرق شته چې دهر وخت په اقامت کې له حی الفلاح څخه وروسته به دوځله قد قامت الصلوة اضافه کوي ولی چې حضرت عبد الله بن زيد رضی الله عنه فرمايې چې مابين النوم واليقظة په حالت کې فرشته داقامت ويلو په حال کې وليدله دکوم په اخر کې چې هغې دقد قامت الصلوة اضافه وکړه .

ف:دامام شافعی ﷫ په نزد دشروع له تکبيره اوقد قامت الصلوة ماسوا داقامت نورې کلمې يو ځل ويل کيږي ولی چې مروی ده چې حضرت بلال ﷺ ته داقامت دکلماتو ديوځل ويلو حکم شوی وو ، احناف ځواب ورکوي چې حضرت بلال ﷺ ته دکلماتو ديوځل حکم ورکونکی مجهول دی معلومه نه ده چې څوک وو په دې وجه دادليل تام نه دی اوحال داده چې حضرت بلال ﷺ دنبی کريم ﷺ په ژوند کې هم اودنبی کريم ﷺ له وفات وروسته هم هميشه داقامت کلماتې دوه دوه ځله ويلې.

(۲۳)په اذان کې ترسل (ددوکلمو ترمنځ له سکتې سره فصل کولو ته ترسيل ويل کيږي )کوي اوپه اقامت کې به حدر(حدردادی چې په کلمو کې به فصل نه وي )کوي ولی چې نبی کريم ﷺ حضرت بلال ﷺ ته امر فرمايلې وو ﴿ اذا اذنت فترسل واذا اقمت فاحدر﴾ (يعنی کله چې ته اذان کوې نو ترسل کوه او کله چې اقامت کوې نو حدر کوه ).

ف:بايد يادوساتل شې چې په اذان کې ترسل اوپه اقامت کې حدر کول مستحب دی لهذا که په دواړو کې ترسل وکړې اويا په دواړو کې حدر وکړې نوهم جائزده ولی چې مقصود يعنی اعلان او اعلام په دواړو صورتونو کې حاصليږي البته دترسل دپرېښودلو له امله اعاده مستحب ده لمافی الشرح التنوير (ويترسل فيه)بسکتة بين کل کلمتين ويکره ترکه وتندب اعادته(ردالمحتار:۱/۲۵۸)

(۲۴)داذان اوقامت په وخت کې به مخ پرقبله دريږي ولی چې له حضرت بلال ﷺ څخه همدا متوارث ده ،اوهمداشان په اذان کې مناجات دی لهذا دقبلې لورته مخ گرځول مناسب دي ،ليکن که چا استقبال قبله ونه کړ نوهم جائزدی ځکه چې مقصود اعلام دی کوم چې بغيرله استقبال قبلې څخه هم

حاصليږي البته د خلاف سنت له امله داسې كول مكروه دي، دا اذان او اقامت په منځ كې د خبرې نه كوي ولې چې خبري كول مقصود يعني اعلام ته مخل دي ،او همدا راز اذان او قامت ذكر معظم دی نو د خطبې په څير بايد په دوئ كې هم تسلسل وي په منځ كې په يو بل كارمشغوليدل مناسب نه دي حال دا چې د خبرو كولو له كبله په كلماتو كې تسلسل او مولات نه پاته كيږي .

(۲۵) كله چې حی الصلوة او حی الفلاح ته ورسيږي نو صرف دي خپل مخ راسته او چپ لورته گرځوي ولی چې په دي دوو كلمو سره قوم ته خطاب دی لهذا دا خطاب به دوئ ته مخامخ كيږي چې لمانځه او كاميابی ته راشئ او همدا شان مخ راسته او چپه لورته گرځول د خبرې خپرولو كې ډير مؤثر دی ، مگر د مخ راسته او چپه لورته په گرځولو كې به سينه او پښې نه گرځوي ،صومعه د راهب خونې ته ويل كيږي دلته له دې څخه مؤذن خانه مراد ده ،نو كه مؤذن خانه غټه وه نو بيا راسته او چپ لورته په تگ كې څه حرج نشته تر څو چې د دي له كړكيو څخه خلگو ته د اذان اواز ورسيږي كوم چې له گرځيدلو څخه بغير ممكن نه دی.

(۲۶) او خپلې دوي گوتې دې په غوږو كې كښيږدي ولې چې نبی كريم ﷺ حضرت بلال ﷺ ته امر كړي وو چې خپلې گوتې په غوږو كې كښيږده دا اواز لوړه وي.

(۲۷) او تثويب دې وايي ،تثويب له اعلان څخه وروسته دوهم اعلان ته وايي شرعاً د تثويب اطلاق په دوو شيانو كيږي يو دا چې د سهار په اذان كې له حيعلتينو څخه وروسته الصلوة خير من النوم ويل دا تثويب د سهار په اذان پسې خاص دی په نورو لمنځونو كې جائز نه دی او د تثويب دوهمه معنی دا اذان او قامت په منځ كې الصلوة جامعة يا حی علی الصلوة يا ددې په شان كومه بله جمله استعمالول ددې معنی په لحاظ سره تثويب ته اكثرو علماو بدعت او مكروه ويلې دي په دې وجه چې دا شان تثويب په عهد رسالت كې ثابت نه دی البته له امام ابويوسف صاحب رحمه الله څخه منقول ده چې هغه د مشتغلين بالعلم لپاره دا خوښوله چې له اقامت څخه مخكې د تثويب په ذريعه سره ياداوری وكړل شي ددې قول وجه داده چې په اصل دا قسم ياددهانی مباح وه ولې چې په نصوصو كې نه ددې امر شوی وو نه نهی . ليكن په بعضو علاقو كې دا تثويب د سنتو په حيثيت سره رواج شو نو علماو دېته بدعت وويل ولې چې مجاهد رحمه الله له حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما څخه نقل كړی دی چې هغه د لمانځه لپاره يو مسجد ته داخل شو دهغه ځای مؤذن تثويب وكړ نو حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما له مسجد څخه ووتلو او ويې ويل چې ماله دې بدعتی څخه بوځئ او هلته يې لمونځ اداء نه كړ،زموږ په زمانه كې دا قسم تثويب سو كه د بدعت او احداث فی الدين باعث جوړيږي په دې وجه علماء له دې څخه منع كوي ،ليكن كه د ضرورت په مواقعو كې داله سنت او عبادت گڼلو څخه بغير اختيار كړای شي نو مباح دی او په دې كې څه حرج نشته قال الشيخ محمدتقی العثمانی مدظله هذا اعدل الاقوال فی ذالک ،څرنگه چې علامه شامی رحمه الله وغيره هم ليكلی دي چې د قاضی ،مفتی او په نوردينې كارونو كې د مشغولو كسانو لپاره د تثويب گنجائش شته .

ف، ځينې مقتديان د اقامت په وخت لاس وترې دريږي بنا يې چې دوئ دا سنت گڼې مگر دا چيرې نه دې ثابت لهذا دا په شريعت باندې زياتوالی دی په دې وجه مكروه ده،همدا شان ځورند لاسونه د تكبير تحريمه په وخت

كې غوږونو ته په ورلوكې چې څومره داحكم الحاكمين دعظمت شان اظهاردی دترلو شو يولاسونو په پورته كولوكې دومره نشته لهذا داعمل پرېښودل اونوروته دپرېښودلو تبليغ كول لازم دى.

(۲۸) وَيَجْلِسُ بَيْنَهُمَا إِلَّا فِي الْمَغْرِبِ

**ترجمه**: اوكښيني دې دده، اړوپه منځ كې (يعنى وقفه دې كوي) مګرنه په ماښام كې

**تشريح**: (۲۸) داذان اواقامت په منځ كې دې په لږوخت ناسته باندې فصل كوي وصل دې نه كوي ولې چې له اذان څخه مقصود خلګوته دوخت دداخليدلو خبروركول دې ترڅوچې هغوئ دلمانځه لپاره تيارى وكړي اومسجدته راورسيږي نوپه وصل كولوسره دامقصود فوت كيږي لهذادومره اندازه فصل كول ضروري ده چې خلګ تياري وكړي اومسجدته راورسيږي البته دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددماښام داذان اواقامت ترمنځ به فصل نه كوي بلكه ددريوكوچنيو ايتونو يايوه لوى ايت په اندازه دې دولاړې په حالت كې سكته كوي ولى چې دماښام په لمانځه كې تاخيركول مكروه دي لهذاله تاخير څخه خلاصيدلو لپاره لږاندازه فصل كول هم كفايت كوي اودصاحبينو په نزددې په ماښام كې هم لږاندازه كښيني ولى چې وصل كول مكروه دي اوپه معمولى سكوت سره فصل نه راځي ولى چې سكوت خوداذان دكلماتو په منځ كې هم وي لهذا په لږاندازه ناسته دې فصل كوي.

**ف**: دااختلاف په افضليت كې دى لهذاكه په لږاندازه ناسته سره يې فصل وكړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدهم دامكروه نه ده ، مګربياهم دامام ابوحنيفه رحمه الله قول مفتى به دى لمافى الدرالمختار (ويجلس بينهما) بقدر مايحضر الملازمون مراعيالوقت الندب (الافى المغرب) فيسكت قائماقدرثلاث آيات قصار ويكره الوصل اجماعا قال ابن عابدين (قوله فيسكت) هذاعنده وعندهمايفصل بجلسة كجلسة الخطيب والخلاف فى الافضلية فلوجلس لايكره عنده (الدرالمختارعلى هامش الشامية ١/٢٨٠:

(۲۹) وَيُؤَذِّنُ لِلْفَائِتَةِ وَيُقِيمُ (۳۰) وَكَذَا الْأُولَى الْفَوَائِتُ وَخُيِّرَ فِيهِ لِلْبَاقِي (۳۱) وَلَا يُؤَذِّنُ قَبْلَ وَقْتٍ وَيُعَادُ فِيهِ

**ترجمه**: او اذان دې كوي دقضاء لمانځه لپاره اواقامت دې كوي ،اوهمداشان داول قضاء شوى لمانځه لپاره اوپه نوركې اختيارلري په اذان كولويانه كولوكې ،اواذان دې نه كول كيږي تروخت له مخه اواعاده دې وكړاى شي په وخت كې دننه.

**تشريح**: (۲۹) يعنى دقضاء شوي لمانځه لپاره دې اذان هم كوي اواقامت هم ﴿لماروى ان النبى ﷺ قضى الفجر غداة ليلة التعريس باذان واقامة﴾ (يعنى مروى ده چې نبى كريم ﷺ دليلة التعريس په سهاردسهاردلمانځه قضاء په اذان اوقامت سره وكړه )،دامام شافعى رحمه الله په نزددې صرف اقامت كوي مګرداحديث مذكورپرده باندې حجت دى.

(۳۰) قوله وكذالاولى الفوائت اى ويؤذن كذالك لاولى الفوائت ،يعنى كه له چاڅخه څولمونځونو قضاء شول اوس يې پوځاى راګرځوي نوداول لمانځه لپاره دې اذان اواقامت دواړه وكړي لماروينا اودنورلمونځوپه باره كې ده لره اختياردى كه يې خوښه شوه نوده هرلمانځه لپاره دې اذان اوقامت دواړه كوي ترڅوقضاء له اداء سره مطابقه شي اوكه يېخوښه شوه نوپه اقامت دې اكتفاءوكړي ولى چې اذان داستحضارلپاره وي

اودلته خو ټول حاضر دي لهذا اذان ضرورت نشته حال دا چې اقامت دافتتاح صلوة خبرورکوي کوم ته چې حاضرين هم محتاج دي .

( ۳۱ )دلمانځه دوخت ترداخليدو راندې اذان کول دطرفينو په نزد معتبر نه دی نو که چاله وخت څخه وړاندې اذان وکړنوله دخول وخت وروسته به دا اذان اعاده کيږي ولې چې له اذان څخه مقصود خلګوته ددخول وخت خبرورکول دي اوله وخت څخه وړاندې اذان کول خلګ په جهالت کې اچوي په دې وجه له وخت څخه مخکې اذان کول شرعاً معتبر نه دی که څه هم دسهارلمونځ هم وي ،البته دامام ابويوسف رحمه الله په نزد دسهار اذان له نيمې شپې وروسته جائزدی .

ف :دطرفينو قول راجح دی لمافي الهندية :تقديم الاذان على الوقت في غير الصبح لايجوز اتفاقاو كذافي الصبح عندابي حنيفه ومحمد وان قدم يعادفي الوقت هكذافي شرح مجمع البحرين لابن الملک وعليه الفتوى (هنديه: ۵۳/۱ وكذافي الدر المختار: ۲۸۴/۱)

ف :دامام ابويوسف رحمه الله په نزد دسهارلپاره دشپې په اخرنی نيمايي کې اذان کول جائزدی ولې چې داله اهل حرمينو څخه متوارثامنقول دی همدادامام شافعي رحمه الله قول هم دی ،مګرپردوئ باندې حجت دنبي کريم ﷺ هغه قول دی کوم چې يې حضرت بلال رضی الله عنه ته فرمايلی وو چې ﴿ لاتؤذن حتى يستبين لک الفجر ومديده عرضا ﴾ (يعنی اذان مه کوه ترڅو چې تاته فجرښکاره داسې ښکاره شي اونبی کريم ﷺ خپل دواړه لاسونه عرضاخپاره کړل).

(۳۲)وَكُرِهَ أَذَانُ الْجُنُبِ وَإِقَامَتُهُ (۳۳)وَإِقَامَةُ الْمُحْدِثِ (۳۴)وَأَذَانُ الْمَرْأَةِ وَالْفَاسِقِ وَالْقَاعِدِ وَالسَّكْرَانِ (۳۵)لَا أَذَانُ الْعَبْدِ وَوَلَدِ الزِّنَا وَالْأَعْمَى وَالْأَعْرَابِيِّ (۳۶)وَكُرِهَ تَرْكُهُمَا لِلْمُسَافِرِ لَا لِمُصَلٍّ فِي بَيْتِهِ فِي الْمِصْرِ (۳۷)وَنُدِبَا لَهُمَا لَا لِلنِّسَاءِ

**ترجمه** :اومکروه ده اذان دجنب اواقامت دده ،اودبې اودسه کس اقامت ،اومکروه ده دښځې اذان اودفاسق اذان اودناست کس اذان اوپه نشه کې دمست اذان ،نه ده مکروه دولدزنا ،رانده اودکوچې اذان،اومکروه ده دواړوپريښودل دمسافرلپاره نه ده هغه چالپاره چې په کورکې لمونځ کوي ،اواذان اواقامت مستحب دی ددوئ واړو لپاره نه دښځو لپاره .

**تشريح** :کله چې مصنف رحمه الله دنفس اذان له بيان څخه فارغ شونودمؤذن دصفاتوبيان يې شروع کړ،دمؤذن يې څه دااول صفتونه ذکرکړل چې که مؤذن له هغوصفاتوڅخه په يوصفت متصف وي نودهغه اذان مکروه دی اوځينې يې داسې صفات هم ذکرکړي دي چې له هغوسره اذان مکروه نه دی .

( ۳۲ )يعنی دجنابت په حال کې اذان کول اوقامت کول مکروه دي ولې چې اذان اواقامت په استقبال قبله اودکلماتوپه ترتيب وغيره کې له لمانځه سره مشابهت لري مګرحقيقة لمونځ نه دی لهذا اذان ددې دواړوجهتونواعتبارکړل شوی دی نوپه حالت جنابت کې داول جهت يعنی دمشابهت اعتبارکولوسره مکروه وګرځول شواودبې اودسی په حالت کې دحقيقت داعتبارکولوسره بغيرله کراهته جائزوګرځول شو.

( ۳۳ )قوله واقامة المحدث اى وكره اقامة المحدث ،يعنی بې له اوداسه څخه اقامت کول مکروه دي ولې چې په دې صورت کې دمؤذن داقامت اولمانځه ترمنځ فصل راځي ،اذان اواقامت په اوداسه سره کول مستحب دي ترڅو چې دکوم کارلپاره دعوت ورکوي دهغه لپاره خوپه پخپله تياروي مګرکه بې له اودسه يې اذان

وكړنوبي له كراهته جائز دى ولى چې اذان دالله ﷻ ذكردى اوذكرلپاره اودس مستحب دى واجب نه دى البته اقامت هم څرنګه چې ذكردى ،مګرله بلې وجې څخه (چې ذكرشوه )مكروه دى.

(۳۴)قوله واذان المرأة والفاسق اى وكره اذان المرأة والفاسق الخ،يعنى دښځي ،فاسق ،قاعداوپه نشه كې دمست اذان مكروه دى،دښځې اذان په دې وجه مكروه دى چې اذان په لوړغ سره په لوړځاى باندې كيږي كوم چې دښځې لپاره ممنوع دى نوكه ښځې اذان وكړنواستحبابادې راوګرځول شي ،اودفاسق اذان په دې وجه مكروه دى چې دفاسق قول په ديانا توكې مقبول نه دى او اذان له ديانا تو څخه دى .اوپه ناسته سره اذان په دې وجه مكروه دى چې كومې فرشتې چې داذان تعليم وركړى وو هغې په ولاړه سره اذان كړى وو ،اوپه نشه كې دمست اذان په دې وجه مكروه دى چې داسې كس فاسق دى اودفاسق په قول اعتماد نشي كيدلاى ،اوهمداراز ددخول وخت معرفت هم ده ته نشي حاصليداى .

ف:دجنب ،ښځې ،معتوه ،په نشه كې دمست اودغيرمميز كوچنې اذان به استحبابا راګرځول كيږي ليكن كه چيرته دكوم جماعت والاوو ته دوخت دخول معلوم وو اوټول حاضروو اوس كوم فاسق كس ياغيرمميز كوچنې اذان وكو نودده اذان دې نه راګرځوي لمافى الشامية :فيعاداذان الكل ندباعلى الاصح كماقدمناه عن القهستانى ثم الظاهران الاعادة انماهى المؤذن الراتب امالوحضر جماعة عالمون بدخول الوقت واذن لهم فاسق اوصبى يعقل لايكره ولايعاداصلا لحصول المقصودتأمل(ردالمحتار:۲۹۰/۱)

(۳۵)قوله لااذان العبدوولدالزنااى لايكره اذان العبدوولدالزناالخ،يعنى دغلام ،ولدزنا ،رانده اودكوچې اذان مكروه نه دى ولى چې ددوئ قول په دينې اموروكې مقبول دى اوددوئ له اذان څخه اعلام حاصليږي .

ف:دغلام اومينځې وجوداوس په دنياكې نشته دشرعى جهادپه سبب به پيداكيدې په قديم دوركې به ميدان جنګ ته ددواړوطرفونوفوځيانوخصوصاداسلام ددښمنانوپوځيانوخپلې ښځې ميدان جنګ ته له خپل ځان سره راوستلې دماتې په صورت كې به مسلمان پوځ ددښمن دپوځ نارينه غلامان اوښځې به يې مينځې جوړولې په كوموبه يې چې بياخپل خذمت كاوو اودنورومالونوپه شان به يې دوئ هم خرڅول،حال داچې په دې دوركې داسلسله ختمه شوې ده .

(۳۶)دمسافرلپاره داذان اواقامت دواړوپريښودل مكروه دي ولى چې دنبى كريم ﷺ دامر مخالفت راځي كوم چې نبى كريم ﷺ مالك بن الحويرث اودهغه داكازوى ته كړى وو چې ﴿إذا سافرتما فأذنا وأقيما ﴾(يعنى كله چې تاسې دواړه سفركوى نواذان اوقامت كوئ )همداراز دسفرله امله جماعت نه ساقطيږي نودجماعت لوازم يعنى اذان اواقامت هم نه ساقطيږي ،البته كوم كس چې په كوركې لمونځ كوي اوپه كلى كې باقاعده اذان اواقامت كيږي نودده لپاره اذان اواقامت پريښودل مكروه نه دي لقول ابن مسعودرضى الله عنه أذان الحي يكفينا (يعنى دكلى اذان زموږلپاره كافى دى )دامام مالك ﷫ په نزدكه كوم كس په صحراء ياكوركې يواځې لمونځ كوي نواذان اواقامت دي نه كوي ځكه چې اذان اوقامت دباجماعت لمانځه لپاره علامې دي نه ديواځې لمانځه لپاره .

(۳۷)قوله وندبالهمالاللنساء ای وندب الاذان والاقامة للمسافروالمصلی فی بیته ولایندبان للنساء ،یعنی دمسافراوپه کورکې دلمونځ کونکې لپاره اذان اواقامت دواړه مندوب دي مګردښځولپاره مندوب نه دي ولی چې اذان اواقامت دجماعت مستحبه لپاره سنت دي اودښځوپه حق کې جماعت مستحب نه بلکه منسوخ دی.

ف:کله چې مؤذن اذان کوي نواوریدونکی دي ځواب ورکوي داجابت مؤذن په باره کې دشمس الائمة حلوانی رحمه الله وغیره علماوورأیه داده چې داذان ځواب ورکول مستحب دی البته اجابت بالقدم (یعنی مسجدته تلل)واجب دی په همدي قول فتوی ده ، که څه هم له ځینواحنافوڅخه داذان دځواب ورکولوپه باره کې دوجوب قول هم ثابت دی لمافی خلاصة الفتاوی ومن سمع الاذان فعلیه ان یجیب قال شمس الحلوانی الاجابة بالقدم لاباللسان حتی لواجاب باللسان ولم یمش الی المسجدلایکون مجیباولوکان فی المسجدحین سمع الاذان لیس علیه الاجابة (خلاصة الفتاوی ۱/۵۰ )وفی عرف الشذی:واماجواب الاذان فالاحناف وغیرهم علی استحبابه(عرف الشذی:۱/۱۷۰ )

ف:داذان ځواب ورکونکی به هغه کلمات وایې کومې چې مؤذن وایې ماسواله حی الصلوة اوحی الفلاح څخه چې دهغوئ په ځواب کې به لاحول ولاقوة الابالله وایې ولی چې له حضرت عمررضی الله عنه څخه مروی ده چې نبی کریم ﷺ وفرمایل کله چې مؤذن الله اکبرالله اکبروواییې نوپه تاسي کې چې کوم څوک واوري نوهغه دي هم الله اکبرالله اکبروواییې بیاچې کله هغه اشهدان لااله الاالله وواییې نواوریدونکی دی هم اشهدان لااله الاالله وواییې بیاچې کله هغه اشهدان محمدرسول الله وواییې نواوریدونکی دي هم اشهدان محمدرسول الله وواییې بیاچې کله هغه حی الصلوة وواییې نواوریدونکی دي لاحول ولاقوة الابالله وواییې بیاچې کله هغه حی علی الفلاح وواییې نوبیادي هم اوریدونکی لاحول ولاقوة الابالله وواییې اوکله چې هغه الله اکبرالله اکبروواییې نودی دي هم الله اکبرالله اکبروواییې اوکله چې هغه لااله الاالله وواییې نودی دي هم لااله الاالله وواییې ،دسهارپه اذان کې دي دالصلوة خیرمن النوم په ځواب کې صدقت وبررت وایې .

ف:البته په فتح القدیر،بحرالرائق اوالنهرالفائق کې په دي خبره ټینګارشوی دی چې له لاحول ولاقوة سره دي حی علی الصلوة اوحی علی الفلاح هم وایې ترڅوچې په واړوحدیثونوباندي عمل وشي ولی چې په یوه حدیث کې راغلی دي چې فلولوامثل مایقول المؤذن ،حال داچې په بل حدیث کې صراحت دی چې دحیعلتین په وخت دي حوقله وایې لمافی الشامیة:واختارفی الفتح الجمع بینهماعملابالاحادیث .....وقدراینامن مشائخ السلوک من کان یجمع بینهمافیدعوانفسه ،ثم یتبرأمن الحول والقوة ،لیعمل بالحدیثین ،وقداطال فی ذالک واقره فی البحروالنهروغیرهما ،قلت وهومذهب سلطان العارفین سیدی محی الدین نص علیه فی الفتوحات المکیة(ردالمحتار:۱/۲۹۳ )

ف:له اذان څخه وروسته دعاپه کومه کې چې نبی کریم ﷺ ته دوسیلي دعاء کړل شوي ده ویل مسنون اومستحب دي اودنبی کریم ﷺ حق دی لهذاهغه دعاباید وویل شي ،عوام په دي دعاء کې بالالتزام لاس پورته کوي حال داچې په دي کې لاس پورته کول اونه پورته کول دواړه برابردي بلکه نه پورته کول افضل دي لمافی فیض الباری:والمسنون فی هذه الدعاء الاترفع الایدي لانه لم یثبت عن النبی ﷺ رفعهماالخ(فیض الباری:۲/۱۶۷ )

ف:له اذان څخه وروسته دعاء په لاندي الفاظوسره له روایاتوڅخه ثابته ده ،اللهم رب هذه الدعوة التامة والصلوة القائمة آت محمداالوسیلة والفضیلة وابعثه مقامامحمودا الذی وعدته ،په بیهقی کې دانک لاتخلف المیعادزیاتوالی هم ذکردی ،له دي څخه ماسوا الدرجة الرفیعة اوپه اخیرکې دبرحمتک یاارحم الراحمین زیادت ثابت نه ده لهذادي په

دعاء کې ويل دسنت خلاف دی لمافی الشامية :قال ابن حجر في شرح المنهاج وزيادة والدرجة الرفيعة وختمه بياارحم الراحمين لااصل لهما(ردالمحتار:۲۹۳/۱)

## باب شروط الصلاة

### داباب دلمانځه دشرطونه په بيان کې دی

شروط دشرط جمع ده شرط په لغت کې دعلامې په معنی سره ده له دې ځخه اشراط الساعة يعنی علامات الساعة دی، اوشرعاًشروط هغه دي په کوم چې ديوشي وجودموقوف وي اوپخپله دی دهغه شي له حقيقت ځخه خارج وي اودهغه په وجودکې مؤثرنه وي .

**ف**:علامه حموی ﷫ فرمايي چې کوم شی چې له بل شی سره متعلق وي نوهغه به له دووحالوځخه خالی نه وي يابه اول په ثانی کې داخل وي يابه نه داخل نه وي که داخل وو نورکن ورته ويل کيږي لکه په لمانځه کې رکوع اوکه داخل نه وو بلکه خارج وو نوبه هم له دوو حالوځخه خالی نه وي يابه اول په ثانی کې مؤثروي يابه نه وي که مؤثروو نودي ته علت ويل کيږي لکه عقدنکاح دحلت لپاره اوکه مؤثرنه وو نوبه هم له دوه حاله ځخه خالی نه وي يابه في الجمله دده طرف ته موصل وي يابه نه وي که موصل وو نودي ته سبب ويل کيږي لکه وخت دوجوب صلوة لپاره اوکه موصل نه وو نوبه بياهم له دوه حاله ځخه خالی نه وي يابه اول په ثانی پسې موقوف وي يابه نه وي که موقوف وو نودي ته شرط ويل کيږي لکه طهارة دلمانځه لپاره اوکه ثانی په اول پسې موقوف نه وو نودي ته علامت ويل کيږي لکه اذان دلمانځه لپاره ،کله چې مصنف ﷫ دسبب (وختونو)اودهغه له علامې (يعنی اذان)ځخه فارغ شونواوس باقی شروط بيانول غواړي .

(۳۸)وَهِيَ طَهَارَةُ بَدَنِهِ مِن حَدَثٍ وَخَبَثٍ وَثَوبِهِ وَمَكَانِهِ (۳۹)وَسَترُ عَورَتِهِ (۴۰)وَهِيَ مَاتَحتَ سُرَّتِهِ إِلَى تَحتِ رُكبَتِهِ (۴۱)وَبَدَنُ الحُرَّةِ عَورَةٌ إِلَّا وَجهَهَا وَكَفَّيهَا وَقَدَمَيهَا (۴۲)وَكَشفُ رُبعِ سَاقِهَا يَمنَعُ وَكَذَا الشَّعرُ وَالبَطنُ وَالفَخِذُ وَالعَورَةُ الغَلِيظَةُ (۴۳)وَالأَمَةُ كَالرَّجُلِ وَظَهرُهَا وَبَطنُهَا عَورَةٌ

**ترجمه** :اوهغه پاک والی دی دلمونځ کونکی دبدن له حدث اوخبث ځخه اودده دجامې پاکوالی دی اودلمانځه دځای پاکوالی دی ،اودده فرض پټول دي ،اوهغه دنامه له لاندې ځخه بيادزنګنوترلاندې پورې دی ،اودازادې ښځې ټول بدن عورت دی مګرنه دده مخ ،ورغوي اودواړه پښې ،اوددې دپنډی دځلورمې ښکاره والی مانع دی همداشان ويښتان اونس اوورنونه اوشرمګاه ده ،اودمينځه دنارينه په شان ده اوددې شااونس هم عورت دي .

**تشريح** :دلمانځه ټول اوه شرطونه دي ديوه (يعنی وخت)بيان له دې ځخه وړاندې وشو اوپاتې شپږ مصنف ﷫ دلته بيان کړي دي ، (۳۸)په دوئ کې اول دادی چې په لمونځ کونکی باندی فرض ده چې دی له هرقسم بې اودسې اونجاست ځخه پاکوالی حاصل کړي اودپاکوالی دحاصلولو طريقه هغه ده چې موږله دې ځخه مخکې بيان کړي ده ، داشرط په حقيقت کې ددريوشرطونومجموعه ده يعنی دبدن پاکی،دجامې پاکې اودځای پاکې ،دبدن پاکي دالله تعالی له دي ارشادځخه ثابته ده ﴿ ياايهاالذين آمنوااذاقمتم الی الصلوة فاغسلواوجوهكم وايديكم الی المرافق وامسحوابرؤسكم وارجلكم الی الكعبين ﴾ (ای ايمان والوکله چې تاسې لمانځه ته دولاړيدلواراده وکړئ نوخپل مخونه اولاسونه سره له څنګلوپرېمنځئ اودخپلو سرونو مسح وکړئ اوخپلې

پښي له بجلکوسره پريمنځئ )وقوله تعالى﴿ وَإِنْ كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا ﴾(يعنى که څه هم تاسې دجنابت په حال کې ياست نوښه پاکې حاصله کړئ)،اودجامې پاکې دالله تعالى له دي ارشادڅخه ثابته ده ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ (اوخپلې جامې پاکې کړه )دايت شريف له عبارت النص څخه دجامې دپاکولوفرضيت ثابتيږي اوپه دلالة النص سره دځاى دپاکوالى فرضيت ثابتيږي ولى چې له جاموڅخه انفکاک ممکن دى اوله مکان څخه غيرممکن دى نوکله چې دممکن الانفکاک طهارت فرض شونودغيرممکن الانفکاک طهارت خوبه په طريقه اولى سره فرض وي .

(۳۹)قوله وسترعورته اى والشرط الرابع سترعورة المصلى ،يعنى دلمانځه څلورم شرط داده چې لمونځ کونکى به خپل ستر پټوي لقوله تعالى﴿خُذُوا زِينَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ ﴾(اى خذواماىوارىعوراتكم عندكل صلوة)په دي ايت مبارک کې له زينت څخه مرادعورت پټونکى شى دى ولى چې دزينت اخذناممکن دى نودا له قبيلې داطلاق اسم الحال على المحل دى اوله مسجدڅخه مرادلمونځ دى اودااطلاق اسم المحل على الحال له قبيلې څخه دى،نواوس ترجمه داشوه واخلې هغه شى کوم چې ستاسې عورت پټ کړي دهرلمانځه لپاره ،نوله ايت مبارک څخه په لمانځه کې دننه دعورت دپټولوفرضيت ثابت شو .

(۴۰)دنارينه دجسم واجب السترحصه له نامه څخه لاندي ترزنګنوپوري ده يعنى نوم واجب السترنه دى البته زنګون واجب السترد ى ،دامام شافعى رحمه الله په نزدددي برعکس دى ،زموږدليل دنامه دنه واجب السترپه باره کې دنبى کريم ﷺ داارشاددى چې﴿ العورة ماذون سرته حتى يجاوز ركبته ﴾(يعنى دنارينه واجب السترېدن له نامه څخه نيولى حتى چې ترزنګنوتجاوز وکړي)اودزنګنوپه باره کې دنبى کريم ﷺ ارشاددى﴿ عَوْرَةُ الرَّجُلِ مابين السُّرَّةِ إِلَى الرُّكْبَةِ ﴾(يعنى دنارينه واجب السترجسم دنامه اودده دواړوزنګنومابين دى )په دي روايت کې رکبته غايه ده اوغايه کله کله په مغياکې داخله وي اوکله نه وي مګردلته په دخول کې احتياط دى لهذاموږ احتياطاًدغايه (زنګون )په مغيا(واجب الستر)کې ددخول حکم وکړ،اوهمداشان ابوهريرة رضى الله عنه راوى دى چې نبى کريم ﷺ وفرمايل چې زنګنونه واجب السترد ي .

(۴۱)دازادي ښځې ټول بدن واجب السترد ى ماسواددي له مخه اوورغوڅخه ﴿لقوله ﷺ ان الجارية اذاحاضت لم تصلح ان يرى منهاالاوجههاويداها ﴾(يعنى کله چې انجلى بالغه شي نومناسبه نه دي چې له دي څخه دي څه وليداى شي ماسواددي له مخه اولاسونوڅخه)دمخ اولاسونوله واجب السترڅخه دمستثنى کولووجه داده چې ډيرديني اودنيوي ضرورتونه ددوئ په ښکاره کولومجبوره کوي خصوصاً دشهادت اونکاح وغيره په وخت کې ،اوهمداشان نبى کريم ﷺ داحرام په حالت کې له دسکلواونقاب اغستلوڅخه منع فرمايلي ده نوکه ورغوي اومخ واجب السترواى نونبى کريم ﷺ به داحرام په حالت کې ددوئ پټول نه حراmول ، اوپښې هم دقول اصح مطابق دضرورت له کبله واجب السترنه دي .

ف :البته پياهم ښه داده چې ښځه پښې پټې کړي په دي وجه چې مولاناعبدالحى لکهنوى رحمه الله دپښوعورت والى ته صحيح ويلى دي لماقال الشيخ عبدالحکيم الشاولکوتي رحمه الله :واعلم ان تصحيح مولاناعبدالحى بکون القدم عورة لحدالاقوال الثلاثة المصححة واختاره الامام الطحاوى وصاحب الاختياروهواوسط الاقوال واحسنهاواشبههابالسنة والیق بالقبول (هامش

الهدایه: ۸۷/۱) دعلامه شامي رحمه الله رجحان هم همدي ته معلومېږي ,قال بعدنقله ان الصحيح ان انکشاف ربع القدم یمنع الصلوة قال لان ظهر القدم محل الزینة المنهي عن ابدائها قال تعالی (ولایضربن بارجلهن لیعلم مایخفین من زینتهن) (ردالمحتار: ۱/۲۹۹)

ف: په سترکې معتبرداده چې په داسې پنډې جامې سره واجب الستربدن پټ شي له کومې څخه چې فرض (واجب الستر ځای) نه ښکارېږي نوپه داسې نرم پروني کې لمونځ نه صحیح کېږي له کوم څخه چې دوېښتانو رنګ معلومېږي، همداشان که له قمیص څخه دښځې دبدن رنګ ښکارېدونودې لمونځ نه صحیح کیږي همدا حکم دنارینه له بدن څخه دواجب الستر حصې دی لمافي الشامیة: (قوله لایصف مالتحته) بان لایری منه لون البشرة احترازاعن الرقیق ونحوالزجاج. (ردالمحتار: ۱/۳۸۱)

ف: واضح دې وي چې کوم اندام واجب السترنه وي نودالازمه نه ده چې هغه ته دې عمداکتل هم جائز وي ولی چې درویت جواز دعلت مدار پردووخبرودی، نمبر۱. دشهوت ویره به نه وي. نمبر۲. هغه اندام به واجب السترنه وي، نودښځې مخ ته دشهوت دوېرې په حالت کې کتل حرام دي همداشان دبي رېرې کوچني مخ ته کتل چې دشهوت خوف وي حرام دی که څه هم واجب السترنه دی یعنی نه دښځې مخ اونه دبي رېرې مخ ،لمافي شرح التنویر (وتمنع) المرأة الشابة (من کشف الوجه بین رجال) لالانه عورة بل (لخوف الفتنة) کمسه وان امن الشهوة لانه اغلظ .......(ولایجوز النظرالیه بشهوة کوجه أمرد) فانه یحرم النظرالی وجهها ووجه الامرداذاشک فی الشهوة امابدونهافیباح ولوجمیلا کمااعتمده الکمال قال فحل النظر منوط بعدم خشیة الشهوة مع عدم العورة. (ردالمحتار: ۱/۲۹۹)

ف: داهم بایدیادوساتل شي چې که دکوم ضرورت له کبله دغیرمحرم مخ ته راتګ لازم شي نوپه ښځه لازم دی چې له مخ سره سره ټول جسم په چادرې یاپنډ ټادرکې پټ کړي دغیرمحرم مخ ته بې له سخت ضرورت څخه دجسم دکومې حصې لځول جائز نه دي (وتمنع) المرأة الشابة (من کشف الوجه بین رجال) لالانه عورة بل (لخوف الفتنة) کمسه وان امن الشهوة لانه اغلظ. (ردالمحتار: ۱/۲۹۹)

(۴۲) یعنی دښځې دپنډۍ څلورمه حصه لوڅېدل دلمانځه لپاره مانع دي دامام ابویوسف رحمه الله په نزد ترنیمایې پورې لوڅوالی مانع دی له دې څخه کم مانع نه دی طرفین رحمهما الله فرمایې چې ربع هم دکل قائم مقام وي لکه دسرپه مسح کې او داحرام په حالت کې دسرپه خریلو کې.

قوله وکذاالشعروالبطن الخ ای وکذایمنع الکشاف ربع الشعرالخ، یعنی لورذکرشوی حکم دسردوېښتانو، نس، ورنونو اودعورت غلیظه هم دی دطرفینو په نزدکه له دوئ څخه دیوه یوه ربع لوڅېدل له لمانځه څخه مانع دي ولی چې داهریومستقل اندام دی، له عورت غلیظه څخه مراددبولو اودپاخانې ځای او خصیتین دي نوله ددې دریوڅخه دکوم یوه ربع لوڅوالی هم له لمانځه څخه مانع دی.

ف: انکشاف کثیرپه لږوخت کې مانع نه دی همداشان انکشاف قلیل په ډېروخت کې مانع نه دی ، هوانکشاف کثیرپه ډېروخت کې مانع دی دمنکشف کثیرحدربع عضوده اومدت کثیرهغه ده په کوم کې چې دلمانځه یوادنی رکن له ذکرمسنون سره دا، کول ممکن وي مثلا دومره وخت چې په هغه کې درې ځله تسبیحات رکوع (سبحان ربی العظیم) ویل کیدای شي لمافي الفتح: فالحاصل ان الانکشاف الکثیرفی الزمن القلیل لایفسدوالانکشاف القلیل فی الزمن الکثیر ایضالایفسد، وقال شارح التنویر (ویمنع) حتی انعقادها (کشف ربع عضو) قدراداء رکن، وقال ابن عابدین (قوله قدراداء رکن) ای بسنته منیه قال شارحها وذالک قدرثلاث تسبیحات (ردالمحتار: ۱/۳۰۰، وفتح القدیر: ۱/۲۶۷)

**ف**:البته دا باید په ذهن کې وي چې دا تفصیل هغه وخت دی چې دلمانځه له شروع کولو څخه وروسته ستر ښکاره شي او که دلمانځه له ابتداء سره دکوم واجب الستر عضو ربع ښکاره وه نو له سره لمونځ نه منعقد کیږي لمافي الشامية: واعلم ان هذا التفصيل في الانكشاف الحادث في اثناء الصلوة ، اما المقارن لابتدائها فانه يمنع انعقادها مطلقا اتفاقا بعد ان يكون المكشوف ربع العضو (الشامية: ۱/۳۰۰)

(**۴۳**)یعنی مینځه دستر عورت په باب کې دنارینه حکم لري نو د مینځې په بدن کې هم له نامه څخه نیولي ترزنګنو پورې حصه واجب الستره ده دي ماسوا د مینځې نس او شا هم واجب الستره ولې چې دا دواړه دشهوت ځایونه دي لهذا د دوئ پټول هم فرض دي ، د مینځې نور بدن واجب الستر نه دی ولې چې حضرت عمر ﷺ یوه مینځه په داسې حال کې ولیدله چې پوړونی یې پرسر وو نو ویې فرمایل ای بدبویه له خپله ځانه څخه پوړنی لرې کړه ایا ته له ازادو ښځو سره ځان برابرول غواړې ، همدا شان مینځه دخپل مولی دخدمت لپاره دکار په جامو کې راوځي نو دضرورت په اساس مینځه دټولو خلکو په حق کې پرذوات محارم باندې قیاسیږي یعنی څومره اندازه پرده چې پر ازادې ښځې له خپلو محارمو څخه واجب ده همدومره پرده پر مینځې له هر نارینه څخه فرض ده .

**ف**:په مینځه او ازاده ښځه کې چې څرنګه په دې معنی فرق دی چې مینځه مال ده دکوم چې اخیستل او خرڅول صحیح دي او ازاده ښځه مال نه ده په دې وجه د دوئ په عورت کې هم فرق کړل شوی دی حتی که مینځې په لغ سر لمونځ اداء کړنو ددې دا لمونځ جائز دی.

(۴۴) وَلَوْ وَجَدَ ثَوْبًا رُبُعُهُ طَاهِرٌ وَصَلَّى عُرْيَانًا لَمْ يَجُزْ (۴۵) وَخُيِّرَ إِنْ طَهُرَ أَقَلُّ مِنْ رُبُعِهِ (۴۶) وَلَوْ عَدِمَ ثَوْبًا صَلَّى قَاعِدًا مُومِيًا بِرُكُوعٍ وَسُجُودٍ وَهُوَ أَفْضَلُ مِنَ الْقِيَامِ بِرُكُوعٍ وَسُجُودٍ

**ترجمه**:او که لمونځ کونکی جامه وموندله دکومې چې څلورمه حصه پاکه وه او ده په لوڅ بدن لمونځ اداء کړنو جائز نه دی، او ده لره اختیار دی که ترڅلورمې کمه حصه پاکه وه ، او که یې جامه ونه موندله نو په ناسته دې لمونځ اداء کړي په داسې حال کې چې رکوع او سجده دې په اشاره سره کوي او دا بهتر ده تر دې چې په ولاړه سره رکوع او سجده وکړي .

**تشریح** :(**۴۴**)یعنی که چیرته چاته داسې جامه په لاس ورغله دکومې چې صرف یوه څلورمه حصه پاکه وه او نوره ناپاکه وه او دناپاکې دلرې کولو لپاره له ده سره یوشی نه وو نو ده دا جامه پرینبنوده او په لغ بدن سره لمونځ اداء کړنو دده دا لمونځ نه صحیح کیږي ولې چې د جامې دڅلورمې حصې پاکوالی دټولې جامې دپاکې په حکم کې دی ولې چې په ډیرو احکامو کې ربع دکل قائم مقامه ده .

(**۴۵**)او که له ربع جامې څخه کمه پاکه وه نو لمونځ کونکی اختیار لري که یې خوښه وي نو دا جامه دې واغوندي او لمونځ دې اداء کړي او که یې خوښه وي نو په لغ بدن دې لمونځ اداء کړي ولې چې کشف عورت او نجاست دواړه دنه مجبورې په حالت کې له لمانځه څخه مانع دي او په مقدار کې دواړه سره برابر دي لهذا دلمانځه په حکم کې به هم دواړه سره برابروي، دامام زفر ﷫ په نزد په لغ بدن سره لمونځ کول جائز نه دي ولې چې دپاکې حکم خود عجز له امله له ده څخه ساقط دی مګر دستر حکم نه دی ساقط ولې چې ده لره پر ستر قدرت حاصل دی.

(۴۶)که له کوم کس سره جامه نه وه نه پاکه اونه ناپاکه نوداکس دي په ناسته سره لمونځ اداء کړي اورکوع اوسجده دي په اشاره سره کوي ولي چې له حضرت انس بن مالک ﷺ څخه مروی ده ،انه قال ان اصحاب رسول الله ﷺ رکبوالی سفينة فانكسرت بهم السفينة فخرجوامن البحرعراة فصلواقعوداباالايماء (يعنی دنبی کريم ﷺ صحابه ﷺ په يوه کشتی کې سفاره شول بياکشتی ماته شوه بياهغه حضرات له درياب څخه لوڅ راووتل اوپه ناسته سره يې په اشاره لمونځ اداء کړ) له دغوصحابه کرامو ﷺ څخه دافعل مروی دی اوبل کوم صحابی ﷺ پردوئ انکارنه ده کړی نوداگواکې ددي پرجواز اجماع ده .

ف:بيادکښيناستلوپه کيفيت کې دوه قوله دي يوداچې دقبلي لورته دي پښې وغځوي اولمونځ دي اداء کړي ولی چې په دي کې دسترپټوالی ډيردي اودوهم قول دادی چې په تشهدکې دکښينستلوپه طرز دي کښيني داقول بنه معلوميږي لماقال الرافعی رحمه الله:لوجلس كالصلوة فانه بستر اغلب فخذيه ممايلي الارض بساقيه ولاتظهرعورته الغليظة حالة الايماء الااذابالغ فيه ولاداعي للمبالغة واذاجلس متربعاماظهرمن قبله بستره بوضع يديه عليه فينبغي ان يكون الفضل من مدرحليه لمافيه من مدهماللقبلة بلاداع تأمل (تقريرات الرافعي:۴۸/۱)البته علامه شامی رحمه الله اول قول اولی گڼلی دی اودهدايه له شرح اوله نوروکتابونو څخه يې تائيدهم پيش کړی دی ،مگربياهم دااختلاف په افضليت کې دی .

اوکه لوڅ کس په ولاړه سره لمونځ اداء کړنوداهم جائز دی ولی چې په ناسته سره دلمانځه په اداء کولوکې دعورت غليظه پټوالی دی اوپه ولاړه سره دلمانځه په اداء کولوکې دلمانځه ارکان يعنی رکوع ،سجده اوقيام اداء کيږي نوله دواړه صورتونوڅخه چې يې کوم يوخوښ وي اختياردي کړي مگراول صورت افضل دی ولی چې عورت پټول دلمانځه اوخلګودواړه دحق له امله واجب دی اوطهارت صرف لحق الصلوة واجب دي .

(۴۷)والنِّيَّةِبِلافاصِلٍ والشَّرطُأنْ يَعلَمَ بِقَلبِهِ أيَّ صَلاةٍ يُصَلِّي (۴۸)وَيَكْفِيهِ مُطلَقُ النِّيَّةِلِلنَّفلِ وَالسُّنَّةِوَالتَّراوِيحِ (۴۹)وَلِلفَرضِ شَرطُ تَعيِينِه كَالعَصرِمَثَلاً (۵۰)والمُقتَدِي يَنوِي المُتابَعَةَ أيضاً (۵۱)وَلِلجِنازَةِيَنوِي الصَّلاةَلِلّٰهِ تَعالَى وَالدُّعاءَلِلمَيِّتِ

**ژباړه** :اونيت له کوم فاصل څخه بغير اوشرط داده چې په خپل زړه کې ورمعلوم شي چې کوم لمونځ اداءکوم ،اوکافی ده مطلق نيت دنفلو ،سنتواوتراويحولپاره ،اودفرضولپاره شرط دی چې دابه متعين کوي مثلا دمازديگرلمونځ کوم. اومقتدی به دامام دمتابعت نيت هم کوي ،اوپه جنازه کې دي دلمانځه نيت دالله تعالی لپاره وکړي اوددعاء نيت دي دمړی لپاره وکړي

**تشريح** :(۴۷)قوله والنية ای والخامس من شروط الصلوة النية بلافاصل ،يعنی دلمانځه له شرائطوڅخه پنځم شرط دادی چې دلمانځه نيت وکړي ولی چې دنبی کريم ﷺ ارشاددی ﴿ إنما الأعمال بالنيات ﴾(يعنی عملونه په نيتونوموقوف دي )،اونيت دي داسي وکړي چې دنيت اودتحريمي په منځ کې کوم منافی الصلوة عمل فاصل موجودنشي ،په نيت کې معتبردزړه اراده ده اوددي علامه داده چې له ده څخه کله پوښتنه وشي نوده لره فی البديه جواب ورکول ممکن وي چې فلانی لمونځ اداء کوم .

ف:په نيت اوفعل صلوة کې اتصال ضروري دی که حقيقی اتصال وي اوکه حکمی ،حقيقی اتصال دادی چې عين دلمانځه دشروع کولوپه وخت کې نيت وکړي ،اوحکمی اتصال دادی چې دنيت اوتحريمي په منځ کې مانع اتصال عمل موجود نشي لکه خوراک څښاک وغيره ،داسي عمل چې قاطع اتصال نه گڼل کيږي دهغه

وجود مضرنه ده مثلاً دلمانځه په اراده سره يي اودس وکړاومسجدته ولاړی نومخکنی نیت کافی دی دنیت دتجدیدضرورت نشته ولی چې دده داتګ وغیره هم دلمانځه په نیت سره وو لهذادانیت لپاره قاطع نه دي
لمافی الشامیة :المرادالفاصل الاجنبی وهومالایلیق بالصلوة کالاکل والشرب والکلام لان هذه الافعال تبطل الصلوة فتبطل النیة واماالمشی والوضوءفلیس باجنبی الاتری ان من احدث فی صلوته له ن یفعل ذالک ولایمنعه من البناء(ردالمحتار:۱/۳۰۷)

ف:په ژبه سره دلمانځه دنیت کولوڅه اعتبارنشته ولی چې داله کوم روایت څخه نه ده ثابته چې نبی کریم ﷺ دافتتاح صلوة په وخت داسي ویل چې اصلی کذاوکذا،اونه په صحابه ﷺ،تابعینواوائمه وکې له چاڅخه ثابته ده ،البته متاخرینو دداسي شخص لپاره دژبې نیت کافی بللی دی کوم چې پریشان وي اوله حضورقلبی څخه عاجز ه وي اوغیرپریشان حال شخص لپاره له قلبی نیت سره سره ذکرلسانی هم مستحب دی ترڅودده قلبی عزم مجتمع شي لمافی الشامیة :(قوله اذلم ینقل)فی الفتح عن بعض الحفاظ لم یثبت عنه ﷺ من طریق صحیح ولاضعیف انه کان یقول عندالافتتاح اصلی کذا ولاعن احدمن الصحابة والتابعین زادفی الحلیة ولاعن الائمة الاربع بل المنقول انه ﷺ کن اذاقام الی الصلوة کبر،(قوله بل قیل بدعة)نقله فی الفتح وقال فی الحلیة ولعل الاشبه انه بدعة حسنة عندقصدجمع العزیمة لان الانسان قدیغلب علیه تفرق خاطره وقداستفاض ظهورالعمل به فی کثیرمن الاعصارفی عامة الامصارالخ(ردالمحتار:۱/۳۰۶)

ف:څرنګه چې پورته ثابته شوه چې دژبې دنیت اعتبارنشته نیت دزړه معتبردی نوکه چاپه لسانی نیت کې غلطی وکړه مثلاپه زړه کې اراده وه چې دماپښین لمونځ اداء کوم اوپه ژبه سر ه يې دمازدیګرنوم یادکړنواعتباردزړه ارادي ته دی دلسانی تلفظ اعتبارنشته څرنګه چې ده په زړه سره صحیح نیت کړی دی نولهذاده لمونځ صحیح دی لمافی الشامیة :(قوله ان خالف القلب )فلوقصدالظهروتلفظ بالعصرسهوااجزاه کمافی الزاهدی قهستانی(ردالمحتار:۱/۳۰۵)

(۴۸)که نفل لمونځ ،سنت یاتراویح وي نودمطلق لمانځه نیت کافی دی ولی چې نیت دعادت او عبادت ترمنځ دفرق کولولپاره وي اودامقصدله مطلق نیت کولوڅخه حاصلیږي په دي وجه مطلق نیت کافی دی اوهمدارازدلمانځه په انواعوکې ادنی نوعه نفل دي فانصرف مطلقها الیه ،مګر دسنتوتعین کول افضل اواحوط دي .

(۴۹)اوکه لمونځ فرض یاواجب وي نوددي تعین کول ضروري دی مثلادمازدیګرلمونځ کوم یاوترکوم ولی چې وخت داسي ظرف دی چې دفرضواونفلودواړوصلاحیت لري اوفرضونه خپله هم مختلف دي لهذاپه دوئ کې امتیاز کول ضروري دي ،واجب هم دفرضوحکم لري مثلاوتر،فاسدشوی نفل ،نذراوسجده تلاوة وغیره .

ف:که دوخت لمونځ کوي نودورځې تعین ضروري نه دی مګربهتراواولی دی لمافی الکفایة :والاولی ان ینوی ظهرالیوم فانه یجوز سواء کان الوقت خارجااوباقیا(کفایة :۱/۲۳۴)،اوکه دچاپه ذمه قضایې لمونځونه وي نودهریوه په نیت کې دورځې متعین کول هم ضروري ده اوکه دلره یادنه وي نوبیادي داسي نیت کوي چې زماپه ذمه چې کې کوم اول دماپښین لمونځ پاته دی مثلایاکوم چې ترټولواخرنی دماپښین لمونځ پاته دی هغه اداء کوم لماقال شارح التنویر:(ولابدمن التعین عندالنیة) ........(لفرض)انه ظهراوعصرقرنه بالیوم اوالوقت اولاهوالاصح(ولو)الفرض (قضاء)لکنه یعین ظهریوم کذاعلی المعتمدوالاسهل نیة اول ظهرعلیه اواخرظهر(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۱/۳۰۸)

(**۵۰**)يعنى كوم كس چې په بل پسي دلمانځه دكولو اراده وكړي نوده لره دوه نيته كول ضروري دي يو دنفس لمانځه نيت اودوهم په بل پسي داقتداء كولونيت ولى چې دبل په لمانځه كې بغيرله نيت څخه داخليداى نشي ،اوهمدارازداوجه هم ده چې دامام دلمانځه په فاسديدلوسره دمقتدى لمونځ هم فاسديږي په دي وجه دمتابعت نيت ضروري دى ترڅوداامام په لمانځه كې دفساده راتلوسره چې كوم فساددده په لمانځه كې راځي دهغه لزوم پرده باندى دده دقبلولواولازمولوله كبله راشي .

(**۵۱**)اودجنازي په لمانځه كې دي دانيت كوي چې لمونځ دالله تعالى لپاره دى اودمړى لپاره دي دعانيت وكړي ولى چې دالمونځ پرده واجب دى لهذاددي تعين اوخالص لله كيدل واجب دى ،دځينوحضراتورأيه داده چې صرف دي دانيت كوي چې دجنازي لمونځ كوم بس همداامتياز لپاره كافى دى دمړى لپاره ددعانيت كول ضروري نه دى لكه څرنګه چې مصنف ﷺ ذكركړي دي ،ليكن ممكن چې مصنف ﷺ دي ديته ااشاره كړي وي چې دجنازي په لمانځه كې دركوع اوسجدي دنيستى له امله دامحض دعامه ګڼه چې صرف مړى ته ددعانيت وكړي ولى چې واجب خولمونځ دى دعاركن ياسنت ده .

(۵۲)وَاستِقْبَالُ القِبْلَةِ فَلِلْمَكِّي فَرْضُهُ إِصَابَةُ عَيْنِهَا وَلِغَيْرِهِ إِصَابَةُ جِهَتِهَا (۵۳)وَالْخَائِفُ يُصَلِّي إِلَى أَيِّ جِهَةٍ قَدَرَ (۵۳)وَمَنِ اشْتَبَهَتْ عَلَيْهِ القِبْلَةُ تَحَرَّى (۵۵)وَإِنْ أَخْطَأَ لَمْ يُعِدْ فَإِنْ عَلِمَ بِهِ فِي صَلَاتِهِ اسْتَدَارَ (۵۶)وَلَوْ تَحَرَّى قَوْمٌ جِهَاتٍ وَجَهِلُوا حَالَ إِمَامِهِمْ تُجْزِيهِمْ

**ژباړه** :اواستقبال قبله شرط دى نودمكى لپاره شرط دى دعين كعبى لورته مخ ګرځول اودغيرمكى لپاره ددي جهت ته مخ كول ،اوله دشمن څخه ويريدونكى دلمونځ اداء كړي كوم لورته چې قادروي ، اوپه چاچې قبله مشتبه شي نوددي غوراوفكروكړي اوكه ده غلطى كړي وه نولمونځ دي نه راګرځوي اوكه ده معلومه شوه غلطى په لمانځه كې نوودي ګرځي ،اوكه تحرى وكړه څه خلكودمختلفو طرفونواودخپل امام له حال څخه ناخبره وو نوهمداتحرى ددوئ لپاره كافى ده.

**تشريح** :(**۵۲**)قوله واستقبال القبلة اى والسادس من شروط الصلوة استقبال القبلة ،يعنى دلمانځه شپږم شرط دقبلي لورته مخ ګرځول دي لقوله تعالى (فولوا وجوهكم شطره)(يعنى وګرځوئ خپل مخونه دمسجدحرام لورته )كه كوم كس په مكه كې وي (په دي شرط چې دلمونځ كونكى اوكعبي ترمنځ ابادى حائله نه وي)نوپردي كس دعين كعبي لورته مخ ګرځول فرض دي ولى چې نبى كريم ﷺ به چې كله په مسجدحرام كې لمونځ كاوو نودعين كعبي لورته به يې مخ كړاولمونځ به يې اداء كاوو همدادصحابه كرامو ﷺ اوتابعينو معمول وو نوګوياپردي اجماع ده ،اوكه لمونځ كونكى له كعبة الله څخه غائب وي نوپرده دكعبي جهت ته مخ ګرځول فرض دي ولى چې طاعت بقدرطاقت لازم وي ،اوهمداراز نبى كريم ﷺ په مدينه منوره كې وو اوالله تعالى ده ته دمسجدحرام لورته دتوجه كولوحكم فرمايلى وو نه دعين كعبي لورته دتوجه كولو ،نوله دي څخه معلومه شوه چې كوم كس چې له كعبة الله څخه غائب وي نوپرده دعين كعبي لورته متوجه كيدل فرض نه دي .

(**۵۳**)كه چيرته كوم كس دخوف اودارله كبله پراستقبال قبله باندي قادرنه وو نوچې دي كوم لورته په مخ ګرځولوقادروي هغه لورته دي مخ كړي اولمونځ دي اداءكړي مثلاكوم كس له دشمن ياځناورو وغيره څخه پټ شواوس دى داريږي چې كه زه حركت وكړم اوقبلي ته مخ كړم نودشمن ته به معلوم شم ياخوله

چاڅخه وارنه وو البته دناروغی له کبله هغه پراستقبال قبله باندې قدرت نه درلوداوڅوک مرسته کونکی هم نه وو نوداکس دې کښيني اويادې په په پريوتوسره په اشاره باندې چې کوم لورته ممکن وي مخ کړي اولمونځ دې اداء کړي ولی چې داکس معذوردی نوداسې شولکه چې پريوچاقبله مشتبه شي دکوم چې حکم په راتلونکی مسئله کې راروان دی.

**ف**:داستقبال قبله حکمت دادی چې لمونځ کونکی دالله ﷻ په خدمت کې دی نولهذادالله ﷻ طرف ته متوجه کيدل ضروري دی مګرڅرنګه چې الله ﷻ په جهت کې له کيدلوڅخه منزه دی لهذاددې دابتلاء په وجه داحکم ورکړل شوی چې دکعبې لورته مخ کړه ولی چې کوم عاقل بالغ چې کله دالله تعالی لپاره جهت محال ګڼي نودده داعقيده ددې مقتضی ده چې دی په لمانځه کې کوم خاص لورته دمخ کول لازم ونه ګڼي مګرالله تعالی دقبلې جهت ته دمخ ګرځولو حکم وکړ ترڅودبنده امتحان واخلي چې بنده حکم مني اوکه يا ،په دې وجه استقبال قبله ضروري ده ،مګرکله چې دکوم عذرله کبله دکعبې لورته مخ ګرځول ممکن نه وي نوحکم شوی دی چې کوم لورته په مخ ګرځولوقدرت لري هغه لورته دې متوجه شي.

**ف**:ريل ګاډی دخپلې وضعې په اعتبارسره داسې دی چې په هغه کې استقبال قبله کيدای شي اوپه منځ کې که انحراف پيداشي نوقبله صحيح کيدای هم شي په دې وجه په ريل ګاډي کې دفرض لمانځه دشروع کولوپه وخت کې هم اوپه دلمانځه په دوران کې هم دقبلې استقبال ضروري دی ،که يې لمونځ دقبلې لورته شروع کړ اوپه منځ کې ريل ګاډی يابس خپل طرف بدل کړنوده لره خپل طرف بدل هم په کاردي اوددې نظيردفقه هغه جزئيه ده کومه چې دلنګراندازي کشتۍ په باره کې فقهاوو ليکلی ده والمربوطة بلجة البحران كان الريح يحركها شديدا فكالسائرة والا فكالواقفة ويلزم استقبال القبلة عند الافتتاح وكلما دارت ،هوکه چيرته دومره رش وو چې ګرځيدل ممکن نه وو اوله ريل ګاډی څخه دباندې دلمانځه داداکيدلوموقع نه وه نوبيايې اداء کولی شي ........دبسونوجوړښت داسې دی چې که بس دقبلې لورته نه وي روان نودقبلې استقبال نشي کيدای په داسې صورت کې که بس ولاړوو نوپه څمکه لمونځ کول واجب دي ،يابس روان وي مګرسواري يې درولی شي نوبيادې هم کښته شي اوپه استقبال قبله سره دې لمونځ اداء کړي اوکه سواري په درلوقدرت نه درلودنوبغيرله استقبال قبلې څخه لمونځ اداء کولی شي .(جديدفقهی مسائل:۱/۱۳۲)په فتاوی حقانيه کې ليکلی دي : که بياهم په ريل ګاډی کې دومره رش وو چې مخ اړول ممکن نه وو نودمجبوري په صورت لمونځ صحيح کيږي دبس اوريل ګاډی حکم يوشان دی اوکه په بس ياريل ګاډی کې درش له کبله ځای تنګ وي نوپه سيټ کې دې په اشاره سره لمونځ اداء کړي اوبيادې اعاده وکړي .(فتاوی حقانيه:۲/۲۶۸)

(**۵۴**)که په کوم کس باندې دقبلې جهت مشتبه شو اوکوم بل څوک هم حاضرنه وو چې له هغه څخه دقبلې لوری معلوم کړي نودې کس لره په خپله رايه اجتهادکول په کاردي په کوم لوري چې يې دجهت قبله غالب ګمان شي هغه لورته دې مخ کړي اولمونځ دې اداء کړي ولی چې دالله تعالی ارشاد ﴿اينما تولوا فثم وجه الله﴾ (ترڅو کوم لورته تاسې مخ کړی هم هلته متوجه دی الله ﷻ )داشتباه په حالت کې دلمانځه په باره کې نازل شوی دی ،هنداشان يوځل په صحابه کرامو ﷺ باندې قبله مشتبه شوه نودوئ اجتهادوکړاولمونځ يې

اداء كړېيايي د دي ذكر نبی كريم ﷺ ته وكړ نو نبی كريم ﷺ پر دوئ انكار ونه كړ نو د نبی كريم ﷺ له طرف څخه عدم انكار د صحت علامه ده.

(۵۵) ياكه په اجتهاد كولو سره د لمانځه له اداء كولو وروسته معلومه شوه چې ده په جهت كعبه كې غلطی كړي ده يعنی د قبلې له طرف څخه علاوه كوم بل طرف ته يې په مخ ګرځولو سره لمونځ اداء كړی دی نو پر دي كس د لمانځه اعاده واجبه نه ده ولی چې پر داسې كس د قبلې په باره كې صرف تحری لازمه ده په كوم كې چې ده هيڅ كوتاهی نه ده كړي او تكليف بقدر وسعت وي، او كه د لمانځه په دروان كې ده ته معلومه شوه چې د كعبې په جهت كې خطاء يم نو دا كس دي په لمانځه كې د قبلې طرف ته راوګرځې ولی چې پر ده د اداء شوي لمانځه له ماتولو بغير د باقی لمانځه په حق كې په اجتهاد عمل كول واجب دی.

(۵۶) كه چاپه توره شپه كې په تحري كولو سره د مشرق طرف ته په مخ ګرځولو سره خلګو ته لمونځ وركړ او خلګو په تحري كولو سره هريوه خپل د تحری طرف ته لمونځ اداء كړ او حال دادی چې ټول د امام تر شا دي مګر دا نه ده ورمعلومه چې امام كوم طرف ته مخ ګرځولی دی نو د دوئ لمونځ صحيح كيږي ولی چې هريوه خپل د تحری جهت ته مخ ګرځولی دی او په داسې وخت كې د دوئ پر ذمه همدا لازم دي، او د دوئ لره د امام مخالفت مانع نه دی كما فی جوف الكعبة.

ف: كوم مقتدی ته چې معلومه شوه چې د ده امام كوم بل طرف ته مخ ګرځولی دی نو د ده لمونځ نه صحيح كيږي ولی چې دی خپل امام پر خطاء ګڼي همدا شان كه مقتدی له امام څخه مقدم وي نو هم د ده لمونځ نه صحيح كيږي ولی چې ده خپل فرض مقام يعنی شاته د ريدل پريښي دي لمالی شرح التنوير: (فمن تيقن) منهم (مخالفة امامه فی الجهة) او تقدم عليه (حالة الاداء) اما بعده فلا يضر (لم تجز صلوته) لاعتقاده خطأ امامه ولتركه فرض المقام (الدر المختار علی هامش ردالمحتار: ۱/۳۲۱)

## بَابُ صِفَةِ الصَّلٰوةِ

### دا باب د لمانځه د صفت په بيان كی دی

داهل لغت په نزد وصف او صفت د واړه سره مترادف دي د صفت تاد واؤ په عوض كې راغلی ده لكه په وعد او عدة كې. د لته د صفت څخه د لمانځه هغه هيئت مراد دی كوم چې د هغه له اركانو او عوارضو څخه حاصل شوی وي. د ځينو حضراتو رأيه داده چې له صفت څخه مراد هغه امور دي كوم چې په باب صفت الصلوة كی ذكر دي په دې وخت كی د صفت اضافت صلوة ته له قبيلی د اضافت الجزء الی الكل دی. ولی چې په دې باب كی كوم امور مذكور دي هريو د لمانځه جزء دی. د دې باب له ماقبل سره مناسبت دا دی. چې كله مصنف رحمه الله د لمانځه له وسائلو يعنی شرائطو څخه فارغ شو نو اوس له دې ځای څخه د مشروط يعنی لمانځه بيان شروع كوي.

ف. د شي د ثبوت لپاره شپږ (۶) شيان ضروري دي (۱) عين يعنی د شي ماهيت پيژندل (۲) ركن يعنی د شي د ماهيت جزء پيژندل (۳) حكم يعنی د شي لپاره ثابت شوی اثر پيژندل (۴) د شي ځای (۵) د شي شرط پيژندل (

( ۶)دشي سبب پیژندل :عین خودلته لمونځ دی اورکن :قیام (ولاړه) ،قرأت ،رکوع،سجده ، وغیره دي ،حکم دلمانځه جواز یافساد اوثواب دی ،محل مکلف انسان دی ،شرط طهارت وغیره دي،او سبب دلمانځه وختونه دي .

(۵۷)فرضها التحریمة(۵۸)والقیام(۵۹)والقراءة(۶۰)والرکوع والسجود(۶۱)والقعود الاخیر قدر التشهد(۶۲)والخروج بصنعه

**ترجمه :**،دلمانځه فرض ،تکبیر تحریمه، اوولاړه ،اوقرأت ،اورکوع اوسجده ،اواخیره ناسته په اندازه دتشهد، اووتل دی دلمونځ کونکی له لمانځه څخه په خپل فعل سره ،

**تشریح :**(۵۷)یعنی دلمانځه فرضونه شپږدي ،اول تکبیر تحریمه دی لقوله تعالی ﴿وربک فکبر﴾ (اودخپل رب لويي بیان کړه) دټولو مفسرینو په دې اجماع ده چې په آیت شریف کې دکوم تکبیر امر دی هغه تکبیر تحریمه دی،اوبل دا کبر صغیه دامر ده اوامر دوجوب لپاره دی ،اودا په اجماع ثابته ده چې دلمانځه دباندې یو تکبیر واجب نه دی نومعلومه شوه چې له هغه تکبیر څخه دلمانځه تکبیر مراد دی ،اودې تکبیرته تکبیر تحریمه په دې وجه ویل کیږي چې دې تکبیر دیر دا سې شیان حرام کړي دی کوم چې ترده مخکې حلال وو .

**سوال:**تکبیر تحریمه شرط دی نو دهغه ذکر کول دلمانځه په شرائطو کې مناسب وو ،مصنف رحمه الله ولی دلته دلمانځه په ارکانو کی ذکر کړې دی ؟

**ځواب :**تکبیر تحریمه ځرنګه چې له لمانځه سره متصل دی نودا په منزله د الباب من الدار دی اوباب که څه هم ددار څخه غیر دی بیاهم هغه ددار حصه ګڼل کیږي همداشان تکبیر تحریمه هم دی.

**ف :**ګونګی سړی به دلمانځه دااداء کولو پروخت دتکبیر تحریمه اوقرأت لپاره ژبه شوروي ځینی حضرات دا فرض ګڼي، مګر راجح دادی چې دژبې شورول فرض نه دی .(احسن الفتاوی :ج ۳ص ۲۹)

(۵۸)قوله والقیام ای وفرضها الثانی القیام :یعنی په لمانځه کی دوهم فرض قیام (ولاړه ) دی ،لقوله تعالی ﴿وقوموا لله قانتین﴾(ودریږئ الله لره په حالت کې دخشوع )وجه استدلال داده چې په دې آیت مبارکه کی ددریدلو امر دی اوامر دوجوب لپاره راځي اوخارج له لمانځه ولاړه بالاتفاق واجب نه ده نوخامخا به په لمانځه کی واجب وی ،اوهمدارازپه دې دمفسرینو اجماع هم ده چې په آیت شریف کی دلمانځه دولاړې امر دی .

**ف :**په لمانځه کی بلاعذر په یوه پښه باندی دریدل مکروه دي ،اودپښوپه منځ کی دلاس دڅلورو ګوتوپه اندازه ځای پریښودل مستحب دی لماقال ابن عابدین رحمه الله :ویکره القیام علی احد القدمین فی الصلوة بلاعذر وینبغی ان یکون بینهما مقدار اربع اصابع الید لانه اقرب الی الخشوع (ردالمحتار: ج ا ص۳۲۸)

**ف :**له ولاړې څخه په دې دول ولاړه مراد ده چې لاسونه خپاره کړي ( وغوړوی)زنګنو(کونی) ته ونه رسیږی، اوهمدارازقیام هغه وخت رکن دی چې لمونځ کونکی په ولاړه اوسجده دواړو قادر وي اوکه چیرته صرف په ولاړه قادر وو اوپه سجده قادر نه وو نودهغه لپاره ولاړه رکن نه دی دهغه لپاره مستحب دادی چې کښيني په اشاره سره لمونځ وکړي، لماقال شارح التنویر :(ومنها القیام) بحیث لومدیدیه لاینال رکبتیه .......... (القادر علیه)وعلی السجود فلو قدر علیه دون السجود ندب ایماؤه قاعدا .(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ج ۱ ص۳۲۸)

(۵۹) قوله والقرئت اى وفرضها الثالث القراة :يعنى په لمانځه کې دريم فرض قرأت دى لقوله تعالى ﴿ فاقرؤوا ماتيسر من القرآن﴾ (له قرآن ځنځه چې څومره اندازه اسانه وي تلاوت كوى يې ) وجه استدلال ددي هم دمخکنى په شير(شان ) ده، او همدراز دقرأت په فرضيت دامت اجماع هم ده .

(۶۰) قوله والركوع والسجود اى وفرضها الرابع والخامس الركوع والسجود ،يعنى په لمانځه کې څلورم اوپنځم فرض ركوع اوسجود دي، لقوله تعالى ﴿ وازكعوا واسجدوا ﴾(اوركوع وکړئ اوسجده وکړئ ) وجه استدلال ظاهره ده.

ف :سجدي ته دتللوپه وخت کی بلکل ملاسيده کول په کاردی ،دزنګنو په ځمکه تر ایښودو مخکی باید په ملاکی ټيټوالی رانشی ،که لږهم ټيټ شونوپه رکوع کې تکرارلازمیږي. (احسن الفتاوى ج۳ص۳۳) اوداتکرار رکن دی اوتکرار رکن که په قصدسره وي نولمونځ واجب الاعاده ګرځي ،اوکه په هيره سره وي نوسجده سهولازميږي .لمافى الهنديه :ولايجب السجود الا بترک واجب اوتاخيره اوتاخير رکن اوتقديمه اوتکرارها ............الخ (الهنديه ج ا ص ۱۲۶ الباب الثانى

(۶۱) قوله والقعود الاخير قدر التشهد اى وفرضها السادس القعود الاخير قدرالتشهد ،يعنى په لمانځه کې شپږم فرض دتشهدپه اندازه اخيره قعده (ناسته )ده يعنى دومره اندازه کښينستل فرض دی چې په هغه وخت کی له التحيات لله ځنځه بياتر عبده ورسوله پورى ويل ممکن وي ،لقوله ﷺ لابن مسعود رضى الله تعالى عنه حين علمه التشهد اذاقلت هذا اوفعلت هذا فقدتمت صلوتک ،کله چې رسول الله ﷺ عبدالله ابن مسعود ﷺ ته تشهد وراښودله نورته وې ويل چې کله ته دا ووايې اوپه دومره اندازه کښيني نوستالمونځ پوره شو ،وجه استدلال داده چې حضور ﷺ دلمانځه پوره کيدل تر اذاقلت هذا (يعنى قرأت التشهد مع القعود ، ولى چې تشهد بغير قعود مشروع نه دى ) ،يا،فعلت هذا (يعنى قعودبدون التشهد )پورى معلق کړی دی ،په دواړوصورتوکی دلمانځه پورکيدل تر قعود پوري معلق دی خواه که تشهدووايې اوکه يې ونه وايې اوکوم شی چې تر يوبل شی پوري معلق وي هغه بغير معلق به نه شي موجودديدای لهذا دلمانځه پوره کيدل بې له تشهدنه شي راتلای نوپه دي وجه قعودفرض دی.

(۶۲) قوله والخروج بصنعه اى وفرضها السابع خروج المصلى من صلاته بصنعه ،يعنى په لمانځه کی اووم فرض دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد له لمانځه ځنځه په خپل اختيارى فعل سره وتل دی ولى چې ددوهم فرض اداءکول ممکن نه دی ترڅوچې له دې لمانځه ځنځه ونه وځی اوچې له کوم فعل ځنځه بغير وفرض ته رسيدل ممکن نه وی هغه فعل هم فرض دی.

ف :دخروج بصنع المصلى . په باره کې پر دې خبره خواتفاق دی چې نه کوم حديث راغلی دی اونه له امام ابوحنيفه رحمه الله يو صريح روايت نقل شوی دی البته علامه بردعى رحمه الله د امام صاحب رحمه الله له يوڅونورو منصوصومسائلو ځنځه دهغه دفرضيت استنباط کړی دی .اوپرهمدې په عمل کولوسره اکثرومصنفينو فرضيت نقل کړی دی اودصاحبينو طرف ته يې دنه فرضيت قول منسوب کړی دی.

بنده له ډير کوشش وروسته په اعلاء السنن اواحسن الفتاوى کښې دابحث پيداکړ دغو دواړو حضراتو د وجوب دقول له نقل کولوسره سره فرضيت راجع ګرځولی دی په اعلاء السنن کی علامه ظفر

احمد عثماني له ډير اوږد بحث وروسته داسي ليکي ، فثبت ان المفروض هو الخروج عمدا بمايانفي الصلوة، او حضرت مفتي رشيد احمد لدهيانوي هم ديو سوال په جواب کی ليکلي: چې وتل له لمانځه څخه دلمونځ کونکي په فعل سره فرض دي دوجوب قول هم شته ليکن دفرضيت قول راجح دی اوپه سلام لفظ سره له لمانځه څخه وتل واجب دي اودامام شافعي رحمه الله په نزد له لمانځه څخه په سلام لفظ سره وتل فرض دي، لقول رسول ﷺ تحليلها التسليم ،(يعني دلمانځه تحليل سلام دی) ،احناف رحمهم الله تعالی ځواب ورکوي چې داخبر واحد دی ،اوپه خبر واحد سره فرضيت نه ثابتيږی .

(۶۳)وَوَاجِبُهَا قِرَاءَةُ الْفَاتِحَةِ وَضَمُّ سُورَةٍ(۶۴)وَتَعْيِينُ الْقِرَاءَةِ فِي الْأُولَيَيْنِ(۶۵)وَرِعَايَةُ التَّرْتِيبِ فِي فِعْلٍ مُكَرَّرٍ(۶۶)وَتَعْدِيلُ الْأَرْكَانِ (۶۷)وَالْقُعُودُ الْأَوَّلُ وَالتَّشَهُّدُ(۶۸)وَلَفْظُ السَّلَامِ(۶۹)وَقُنُوتُ الْوِتْرِ(۷۰)وَتَكْبِيرَاتُ الْعِيدَيْنِ(۷۱)وَالْجَهْرُ وَالْإِسْرَارُ فِيمَا يُجْهَرُ وَيُسَرُّ

**ترجمه**: واجبات دلمانځه سورة فاتحة ويل دي اوله سورة فاتحة سره سورة يوځای کول دی ،او معلومول دقرأت په دوو اولنيو رکعاتو کې دی ،اوپه فعل مکرر کې دترتيب لحاظ کول دی ، اودارکانو اداءکول په ارامه سره دی ، اوله ناسته اوتشهد ويل دی ، اولفظ د سلام ويل دی ، اوپه وتروکی دعاء قنوت ويل دی، اوتکبيرات العيدين دی ، اوقرأة په زوره اوسوکه ويل په کومو لمنځوکی چې په زوره ياسوکه ويل کيږي.

**تشريح** :(۶۳) په لمانځه کی دننه يولس شيان واجب دي له هغو څخه يوسورةفاتحة ويل دی اودوهم له فاتحه سره يوسورة اويادرې آياتونه له کوم سورة څخه چې خوښه يې شې يوځای کول واجب دی ، زموږ په نزد مطلق قرأة قران فرض دی ، لقوله تعالی﴿ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ ﴾ (له قرآن چې څومره قدر اسان وي درته هغومره وياست )اوفاتحه اوله هغی سره يوسورة يوځای کول دادواړه جلاجلا واجب دي .ولی چې دفاتحه ثبوت په خبرواحدسره دی اوپه خبرواحد سره فرضيت نه ثابتيږی صرف وجوب ثابتيږی اودضم سورة وجوب دنبی کريم ﷺ له مواظبت بلاترک څخه دی په کوم سره چې صرف وجوب ثابتيږي فرضيت نه ثابتيږي

ف :امام شافعي رحمه الله دفاتحې دفرضيت قائل دی لقول رسول الله ﷺ ﴿ لَا صَلَاةَ إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ ﴾ (بغير له فاتحه الکتاب څخه لمونځ نشته) يعنی بغير له فاتحه لمونځ نه صحيح کيږي ،احناف ځواب ورکوي چې دمطلق قرأة فرضيت له دې آيت مبارکه﴿ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ ﴾ (له قرآن چې څومره درته آسان وی هغومره وياست ).ثابت دي ،ستاله وړاندي کړل شوي روايت څخه دسوره فاتحه فرضيت نه ثابتيږي ولی چې خبرواحددی اوپه خبرواحدسره په کلام الله باندي زيادت جائزنه دی هوله خبرواحد څخه وجوب ثابتيدلی شې په کوم چې موږهم قائل يو.

(۶۴)تعيين القراة في الاولين ای الواجب الثالث تعين القراة في الرکعتين الاولين :يعنی دريم واجب په فرض لمانځه کی اول دوه رکعته دقرأة لپاره متعين کول دي﴿الْقَوْلُ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ الْقِرَاءَةُ فِي الْأُولَيَيْنِ قِرَاءَةٌ فِي الْأُخْرَيَيْنِ﴾ (يعنی په دوو اولو رکعتوکی قرأة ويل کفايت کوی له قرأة په دوو اخيرنيوکې) مگر دحضرت علی رضي الله عنه داقول د مدعي دثبوت لپاره ډير واضح دليل نه دی ولی چې په اولنيودوو رکعتو کی قرأة ويل داخيری دوو رکعتو لپاره له کفايت کولو څخه دانه لازميږی چې په اخری دوورکعتوکی قرأة کفايت نه کوي ،نوپه دې وجه قرأة

په اولو دوو رکعتو کې واجب شوي ،ډیره مناسبه داده چې په اولنیو دوو رکعتو کی دقرأة دواجب کیدو لپاره داوجه بیان کړای شي چې اول دوه رکعته دوړاندي والي په وجه سره دقرأة ډیر مستحق دي .

(۶۵)قوله ورعاية الترتيب في فعل مكرر اي والواجب الرابع رعاية الترتيب في فعل مكرر ،یعني څلورم واجب دادی چې کوم فعل په یوه رکعت کې مکرر وي په هغه کی دترتیب لحاظ کول واجب دی فرض نه دی حتی چې که یوچا په هیره دوهمه سجده پریښوده اودوهم رکعت لپاره ولاړ سو په وروسته کې هغه یې سجده راوګرځوله نودهغه لمونځ فاسدیږی نه ، اووجه دوجوب یې داده چې حضور ﷺ مراعات ترتیب همیشه توب کړي دی اوهمیشه توب بې له ترکه دوجوب دلیل دی،اوکوم افعال چې په یوه رکعت کښې مکرر نه وي په دوو رکعتو کښې مکرر وي دهغوپه مابین کی ترتیب فرض دی لکه درکوع اوسجدی په مابین کی ترتیب فرض دی ولی چې له هغه بغیر له مونځ نه کیږی .

(۶۶)قوله وتعديل الاركان اي والواجب الخامس تعديل الاركان ،یعني پنځم واجب تعدیل الارکان دی یعنی رکوع اوسجده وغیره داسي په اطمینان سره اداء کول چې ټول اعضاء اوهډونه خپل ځای ته ورسیږی اوقرار ونسي ولی چې دارکان ویه ارامه سره په اداءکولو کې دفرض پوره والی راځي ،اوکوم شی چې دفرض پوره کونکی وي هغه فرض دی ،اوهمدراز نبی کریم ﷺ په تعدیل الارکان باندي همیشه توب کړي دی اودحضور ﷺ همیشه توب په یو کار باندي دوجوب دلیل دی .

ف :دامام ابویوسف رحمه الله اوشافعی رحمه الله په نزد تعدیل الارکان فرض دی، ولی چې نبی کریم ﷺ یوداسې کس ته چې هغه لمونځ په اطمینان سره نه اداء کاوو فرمایل ﴿ ارجع فصل فانك لم تصل ﴾بیرته ولاړشه لمونځ وکه ولی چې تالمونځ نه دی کړي .احناف ځواب ورکوي چې د نفس رکوع اوسجدي فرضیت دالله ﷻ له دي آیت مبارکه ﴿ واركعوا واسجدوا ﴾څخه ثابت دی،په دي په خبرواحدسره په زیادت کولو سره دتعدیل الارکان فرضیت ثابتول صحیح نه دي ولی چې په خبر واحدسره په کتاب الله باندي زیادت جائزنه دی ،هو په خبرواحدسره وجوب ثابتیدلی شي په کوم چې موږهم قائل یو .

(۶۷) قوله والقعود الاول اي الواجب السادس القعود الاول،یعني شپږم واجب دلمانځه اوله ناسته ده اواووم واجب په قعده یې اولی کی تشهد ویل دي،ولی چې له حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی ﴿ اخذرسول الله ﷺ بيدي وعلمني التشهد كما كان يعلمني سورة من القران وقال قل التحيات لله الخ ﴾(یعنی حضور ﷺ زمالاس ونیوی اوماته یې تشهد راوښودي لکه څرنګه چې به ماته حضور ﷺ یوسورة دقرآن راوښودي اوراته یې وویل ووایه التحیات لله الخ)اوقل امر دی له کوم څخه چې وجوب ثابتیږی فرضیت نه ثابتیږی ولی چې داخبرواحددی اودتشهد ویل بغیر له قعود څخه له یوه څخه ثابت نه دی لهذا دتشهدوجوب دقعود وجوب لره هم مقتضی دی،اوهمدراز نبی کریم ﷺ په قعود اوتشهد ویلوباندی بلاترک همیشه توب کړي دی کوم چې دوجوب دلیل دی .

(۶۸)قوله ولفظ السلام اي والواجب الثامن لفظ السلام ، یعنی اتم واجب دلمانځه په اخیرکی سلام ګرځول دی ولی چې حضور ﷺ په لفظ دالسلام بغیرترک همشه توب کړي دی کوم چې دوجوب دلیل دی ،البته دامام

شافعي رحمه الله په نزد سلام ګرځول فرض دی لقوله ﷺ ﴿ وتحليلها التسليم ﴾(یعنی دلمانځه تحلیل سلام دی )احناف ځواب ورکوي چې داخبرواحد دی اوپه خبرواحدسره فرضیت نه ثابتیږی مګر په خبرواحدسره وجوب ثابتیږی اوپه وجوب موږهم قائل یو.

اوهمداشان له عبدالله بن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی﴿ قال قال رسول الله ﷺ اذاقعدفي آخر صلاته لم احدث قبل ان يسلم تمت صلوته ﴾نوکه لفظ دسلام فرض وای لمونځ به نه تامیدای بلکه فاسدکیدای به.

( ۶۹ )قوله وقنوت الوتر ای الواجب التاسع قنوت الوتر ،یعنی نهم واجب زموږپه نزد دوترو په اخیری رکعت کې تول کال دعاء قنوت ویل دي ،ولی چې حضور ﷺ په دغه باندی مواظبت کړي دی ،اوکله چې حضور ﷺ حضرت حسن بن علی رضی الله عنه ته دعاء قنوت ورښووی نوورته ویې فرمایل چې﴿ اجعل هذافي وترک ﴾(چې دا په خپلوو تروکی وایه )په دغه روایت کی درمضان اوغیررمضان هیڅ فرق نشته لهذا په ټول کال کی دعاء قنوت واجب دی.

ف :دامام شافعي رحمه الله په نزدبه صرف درمضان المبارک په اخیری پنځلس ورځوکی دعاء قنوت وایې، ولی چې حضرت عمر رضی الله عنه أبی بن کعب رضی الله عنه ته صرف درمضان المبارک په نصف اخیرکې ددعاء قنوت دویلوامر کړی وو ،احناف ځواب ورکوي چې نبی کریم ﷺ حسن بن علی رضی الله عنه ته مطلق امر کړی وو په کوم کی چې درمضان اوغیر رمضان هیڅ فرق نشته ، اوهمداشان دشوافعو په نزد دسهار په لمانځه کی دعاء قنوت ویل واجب دی ولی چې نبی کریم ﷺ دسهار په لمانځه کی دعاءقنوت ویلی وو ،احناف ځواب ورکوي چې په بخاری شریف کی روایت دی چې حضور ﷺ تریوه میاشت پوری پررعل اوذکوان قبائلو باندی دښیرا لپاره قنوت نازله ووایو ،بیایې پریښودی ،لهذا دسهار په لمانځه کی قنوت ویل دهمیشه لپاره نه دي.

( ۷۰ )قوله وتکبیرات العیدین ای والواجب العاشر تکبیرات العیدین ،یعنی لسم واجب داخترونو تکبیرات زوائد دي ددي دلیل یې دابیان کړی دی چې حضور ﷺ پردي باندی مواظبت بلاترک فرمایلی دی کوم چې دوجوب دلیل دی.

( ۷۱ )قوله والجهر والاسرار فیمایجهر ویسر ای والواجب الحادی عشر الجهر والاسرار فیمایجهر ویسر ،یعنی یوولسم واجب دادی چې په جهری لمنځو نوکې به قرأتپه لوړاوازسره وایې اوپه سری لمنځونوکی به قرأة آهسته وایې دلیل دامت اجماع ده ولی چې دنبی کریم ﷺ له زمانې څخه نیولې ترننه پوري په جهری لمنځونوکی پرجهر اوپه سری لمنځونوکې پراخفاء باندي دتول امت اجماع ده ، اوهمداشان نبی کریم ﷺ پرجهراواخفاء باندي مواظبت بلاترک فرمایلی دی کوم چې دوجوب دلیل دی.

ف :د اصح قول مطابق .قومه اوجلسه هم له واجبات دلمانځه څخه دي ،لهذا دنوروواجبات په څیر ددوئ په سهواسره په پریښودلوهم سجده واجبیږي ،که یې سجده سهوونه کړه،یایې په قصدسره په قومه اوجلسه کی څخه خلل راغی نولمونځ واجب الاعاده دی لمافي الشامیه : والحاصل ان الاصح روایة ودرایة وجوب تعدیل الارکان ,وأماالقومة والجلسة وتعدیلهما فالمشهور في المذهب السنیة وروی وجوبها ,وهو الموافق للادلة ,وعلیه الکمال ومن بعده من المتاخرین

وقدعلمت قول تلميذه انه الصواب ،وللعلامة البركي رسالة سماها ،معدل الصلوة ،اوضح فيها غاية الايضاح وبسط فيها ادلة الوجوب ،وذكر مايترتب على ترک ذالک من الآفات واوصلها الى ثلاثين آفة. (الشاميه: ج ۱ ص ۳۳۳)

**ف**:مذكوره ټول امور واجب دي له دغو څخه دكوم يوه په هيره سره په پرېښودلو باندي سجده سهوكول وجب ده كه يې سجده سهو ونه كړه يا يې په قصد سره يو واجب پرېښودى نولمونځ واجب الاعاده ګرځي لمافى التنوير وشرحه: ولهاواجبات لاتفسدبتركها وتعاد وجوبا فى العمد والسهوان لم يسجدله وان لم يعدها يكون فاسقا ، آثما، وفى الشامية: (قوله ان لم يسجدله) اى للسهو وهذاقيدلقوله ،والسهو، اذلاسجود فى العمد. (الدرالمختار مع الشاميه ج ۱\ص ۳۳٦)

**سوال** :په بهشتي زيور كى دي چې په لمانځه كى الحمد اوسورت وغيره كه دومره آهسته ووايې چې په خپلوغوږو يې نه واوري نولمونځ يې نه صحيح كيږي ،نوايا دومره په زوره قرأت ويل چې په خپلو غوږونويې واوري فرض دى كه واجب،كه يې په غلطى سر ديرپه سوكه اوازسره ووايې بيايې په يادشي نوايا په سجده سهو سره لمونځ صحيح كيږي ؟

**جواب** : دايوقول دى دوهم قول دادى چې كه حروف صحيح اداء كړي نولمونځ يې كيږي كه څه هم په خپله يې نه واوري،په قول اول باندى په عمل كولو اكثر وهم پيدا كيږى ،اواكثره خلک يې ددي وهم په وجه سره په زوره زوره وايي له كوم څخه چې دنوروپه لمانځه كې خلل پيدا كيږي ،په دي وجه زمايه خيال پردوهم قول باندي عمل كول په كار دى .(احسن الفتاوى ج۳ص۷۵)

(۷۲)وَسُنَنُهَارَفْعُ الْيَدَيْنِ لِلتَّحْرِيمَةِ(۷۳)وَنَشْرُ أَصَابِعِهِ وَجَهْرُ الْإِمَامِ بِالتَّكْبِيرِ وَالثَّنَاءُ وَالتَّعَوُّذُ وَالتَّسْمِيَةُ وَالتَّأْمِينُ سِرًّا(۷۴)وَوَضْعُ يَمِينِهِ على يَسَارِهِ تَحْتَ سُرَّتِهِ(۷۵)وَتَكْبِيرُ الرُّكُوعِ وَالرَّفْعِ منه(۷٦)وَتَسْبِيحُهُ ثَلَاثًا

**ترجمه**:اوسنن دلمانځه دواړه لاسونه پورته كول دي دتكبير تحريمه لپاره ،اوخلاسول دي دخپلو ګوتو ،او په زوره ويل دامام تكبير لره ،سبحانک اللهم ،اعوذبالله ،بسم الله ، اوآمين ،آهسته ويل دي ،او ايښودل دي دښى (راسته) لاس پركيڼ (چپه لاس) باندي ترنامه لاندي ،او ركوع ته دتلو په وخت كې تكبيرويل دي ،اوله دي څخه دراپورته كيدلو پروخت ،اوپه ركوع كى دري ځله تسبيح ويل.

**تشريح**:(۷۲)كله چې دلمانځه له واجباتو څخه مصنف رحمه الله فارغ شو نواوس يې دلمانځه په سننو شروع وكړه كوم چې درويشت (۲۳)دي،اول دادى چې دتكبيرتحريمه پر وخت دواړه لاسونه دومره اندازه لوړكړي چې دواړه بټې ګوتي د دواړو غوږونو له نرميو سره برابري شي ولى چې رسول الله ﷺ له كله ناكله ترک سره پردي هيشه والى كړى دى اوله كله ناكله پريښودو سره هميشه توب دسنت والى علامه ده.

**ف**:درفع اليدين دوخت په باره كې( يعنى چې څه وخت به يې پورته كيږي) دفقه په كتابو كى دري اقوال منقول دي،يوقول دادى چې اول تكبيرتحريمه ووايې بيالاسونه پورته كړي ،دوهم دادى چې د لاسونوله پورته كولوسره يوځاى تكبيرتحريمه روايي يعنى د رفع اليدين له ابتداء سره دتكبيرتحريمه ابتداء وكړي اودهغه په ختميدلوسره تكبير ختم كړي ،دريم قول دادى چې دلاسونو له پورته كولوڅخه وروسته دي تكبيرتحريمه ووايي بيادي لاسونه وتړي دااخيرنى قول راجح دى ،قال فى التنوير :ورفع اليدين قبل التكبير :وقيل معه ،قال ابن عابدين :(قوله قبل التكبير وقيل معه )الاول نسبه فى المجمع الى ابى حنيفة ومحمد رحمهما الله تعالى وفى غاية البيان الى عامة العلمائنا وفى المبسوط الى اكثر مشائخنا وصححه فى الهداية والثانى اختاره فى الخانية والخلاصة والتحفة والبدائع والمحيط بان يبدأ بالرفع عندبداء ته

التكبير ويختم به عند ختمه وعزاه البقالي الى اصحابنا جميعا ورجحه في الحلية وثمة قول ثالث وهو انه بعد التكبير والكل مروي عنه ﷺ وما في الهداية اولى كما في البحر والنهر ولذا اعتمده الشارح فافهم. (ردالمحتار، ج ۱ ص ۳۵۶)

(۷۳) قوله ونشر اصابعه اى ومن سنن الصلوة نشر اصابعه ،يعني دلمانځه له سنتونو څخه دوهم سنت دادى چې د رفع اليدين په وخت كې دي خپلې ګوتې خلاسي پرېږدي په دي دول سره چې ګوتې پر خپل حالت باندي وي ولى چې له رسول الله ﷺ څخه همداشان مروي دی ،دريم سنت دادی ،چې امام دي تكبيرپه زوره ووايي ولى چې په لمانځه كې دداخليدلو خبرور كولو لپاره دتكبيرپه زوره ويلوضرورت دی ،اودثناء ، اعوذ بالله ،بسم الله ،اوآمين ،سوكه (اهسته) ويل سنت دي،ولى چې ددي تولوپه باره كې ډېر روايات منقول دي.

ف:امام شافعي رحمه الله فرمايي چې تسميه اوآمين دي په لوړ اوازسره وايې ولى چې له نبي كريم ﷺ څخه تسميه په لوړ اوازسره ويل مروی ده،احناف ځواب وركوي چې د حضور ﷺ تسميه په لوړ اوازسره ويل تعليما ووترڅوچې دامعلومه شي چې دتسميه ځاى دتعوذ اوقرأة منځ دی ولى چې له حضرت انس ﷺ څخه مروی ده چې حضور ﷺ به تسميه آهسته ويله ،دتأمين په باره كې دامام شافعي رحمه الله دليل دحضرت وائل ابن حجر ﷺ روايت دی چې ﴿كان رسول الله ﷺ اذاقرأ ولاالضالين قال آمين ورفع بها صوته﴾ (يعني كله به چې رسول الله ﷺ ولاالضالين وايونوآمين به وايو اوله آمين سره به يې خپل آواز په زوره كړ) احناف وايې چې آمين له اذكارو څخه دی اوپه اذكارو كې اصل اخفاء ده.

(۷۴) قوله ووضع يمينه على يساره اى ومن سنن الصلوة وضع يمينه على يساره ،يعني دلمانځه له سنتونو څخه يو دادی چې دقيام په حالت كې ترنامه لاندي ښى (راسته) لاس په كيڼ (چپ) لاس باندي ايښودل سنت دی، حال داچې دامام مالك رحمه الله په نزد دلاسونو ايله كول سنت دی اودامام شافعي په نزد پر سينه ايښودل سنت دی ،ولى چې مروی ده چې رسول الله ﷺ به لاس پر سينه ايښودل ،زمونږ دليل دحضرت وائل ابن حجر ﷺ روايت دی ﴿قال رايت رسول الله ﷺ وضع يمينه على شماله تحت السرة﴾ (حضرت وائل ابن حجر ﷺ فرمايي چې ما رسول الله ﷺ وليدی چې هغه خپل راسته لاس پر چپه لاس باندي ترنامه لاندي ايښى وو) اوهمدشان ترنامه لاندي لاس ايښودل اقرب الى التعظيم دي اومقصود هم تعظيم دی.

(۷۵) قوله وتكبير الركوع اى ومن سنن الصلوة تكبير الركوع ،يعني د لمانځه له سنتونو څخه ركوع ته دتللو لپاره تكبير ويل دی ولى چې له حضرت ابن مسعود ﷺ څخه مروی ده ﴿ان النبي ﷺ كان يُكَبِّرُ عِنْدَ كل رَفْعٍ وَخَفْضٍ وقيام وركوع﴾ (يعني نبي كريم ﷺ چې به كښته كيدو ياپورته كيدو ،دريدو ياكښيناستو نو تكبير به يې وايو) اوله ركوع څخه پورته كيدل سنت دی مګر صحيح دادی چې له ركوع څخه سيده دريدل واجب دي لكه څرنګه چې ددي تفصيل به مخكي دمصنف رحمه الله په قول والقومة والجلسة كې راشي. قوله الرفع منه مرفوع دی ،په التكبير باندي عطف دی نه په الركوع باندي ولى چې كه په الركوع باندي عطف شي بيا يې معنى داسي كيږي چې له ركوع څخه دپورته كيدو په وخت كې تكبير سنت دی اوحال دادي چې له ركوع څخه دپورته كيدو په وخت كې تكبير سنت نه دی بلكه تسميع سنت ده.

(۷۶) قوله وتسبيحه ثلاثا اى ومن سنن الصلوة تسبيحه ثلاثا ،يعني دلمانځه له سنتونو څخه په ركوع كې دري ځله سبحان ربى العظيم ويل دي اودادري ځله ويل دكامل سنت ادنى درجه ده ﴿لِقَوْلِهِ صلى الله عليه وسلم إِذَا رَكَعَ احدكم

فليقل في ركوعه سبحان ربي العظيم ثلاثا وذلك أدناه﴾ (يعنى كله چې له تاسو څخه څوک ركوع كوي نو په خپله ركوع كې دې درې ځله سبحان ربى العظيم ووايې او دا ددې ادنى درجه ده)صاحب منيه فرمايې: چې اووه ځله تسبيح ويل كامل سنت دى او پنځه ځله اوسطه مرتبه ده اودرې ځله ادنى درجه ده.

ف:كه كوم كس ،دسبحان ربى العظيم ،ظاء ،صحيح نه شې ويلاى نو هغه دې دعظيم پر ځاى ،كريم ، وايې ترڅو چې دهغه له ژبې څخه ،عزيم ،ونه ويل شې په كوم سره چې لمونځ فاسديږي ،لمافي الشامية (تنبيه)السنة في الركوع سبحان ربي العظيم الاان كان لايحسن الظاء فيبدل به الكريم لئلايجرى على لسانه العزيم فتفسد به الصلوة (ردالمحتار ج ١ ص\٣٦٥).

(٧٧)وَأَخْذُ رُكْبَتَيْهِ بِيَدَيْهِ وَتَفْرِيجُ أَصَابِعِهِ (٧٨)وَتَكْبِيرُ السُّجُودِ وَتَسْبِيحُهُ ثَلَاثًا (٧٩)وَوَضْعُ يَدَيْهِ وَرُكْبَتَيْهِ (٨٠)وَالْافْتِرَاشُ رِجْلِهِ الْيُسْرَى وَنَصْبُ الْيُمْنَى وَالْقَوْمَةُ وَالْجِلْسَةُ (٨١)وَالصَّلَاةُ عَلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم ﷺ (٨٢)وَالدُّعَاءُ

**ترجمة:**(او دلمانځه له سنتو څخه )نيول دي دګونډو په دواړولاسونو سره او ګوتې خلاصې پريښودل، دسجدې لپاره تكبيرويل او ددې تسبيح درې ځله ويل ،پر ځمكه ددواړولاسونو ايښودل دي دګونډو له ايښودلو څخه وروسته ګونډو ترايښودلو څخه وروسته ،او چپه پښه غوړول او راسته پښه درول اوله ركوع څخه دريدل ،اودسجدو په منځ كې كښيناستل ،اودرود ويل په رسول الله ﷺ باندې ،اودعاء كول دي.

**تشريح:**(٧٧)قوله واخذ ركبتيه اى ومن السنن اخذ ركبتيه وتفريج اصابعه ،يعنى دلمانځه له سنتو څخه دركوع په حالت كې خپلې دواړې ګونډې په خپلو دواړولاسونو سره نيول دي او ګوتې خلاصې پريښودل دي ﴿لماروى ان رسول الله ﷺ ركع فوضع يديه على ركبتيه كانه قابض عليهما ﴾(يعنى روايت دى چې رسول الله ﷺ ركوع وكړه اولاسونه ئې په ګونډو داسې ايښى وو لكه چې هغه ئې نيولې وي) و﴿ لقوله صلى الله عليه وسلم لأنس إذا ركعت فضع يديك على ركبتيك وفرج بين أصابعك﴾ (چې كله ته ركوع كوې نو خپل لاسونه پر خپلو ګونډو كښيږده او ګوتې خلاصې كړه).

(٧٨)قوله تكبير السجود اى من السنن تكبير السجود،يعنى دلمانځه له سنتونو څخه سجدې ته دتللو لپاره تكبيرويل دى،ولى چې له حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى ﴿ان النبى ﷺ كان يكبر عند كل رفع وخفض وقيام وركوع﴾ (يعنى نبى كريم ﷺ چې به كښته كيدو يا پورته كيدو ،دريدو يا كښيناستو نو تكبير به يې وايو)او په سجده كې درې ځله سبحان ربى الاعلى ويل سنت دي ،او دا د كامل سنت ادنى درجه ده﴿لقوله ﷺ اذا سجد احدكم فليقل في سجوده سبحان ربي الاعلى ثلاثا وذالك ادناه﴾(يعنى چې كله له تاسو څخه څوک سجده كوي نو په سجده كې دې درې ځله سبحان ربى الاعلى وايې او دا هغه كمه درجه دى).

(٧٩)قوله ووضع يديه بعد ركبتيه اى ومن السنن وضع يديه بعد ركبتيه ،يعنى سجدې ته دتللو پر وخت له لاسونو څخه وړاندې پرځمكه دواړه ګونډې ايښودل سنت دي دامام مالک رحمه الله په نزد باندې اول پرځمكه لاسونه ايښودل بيا ګونډې ايښودل سنت دي،دهغه دليل دحضور ﷺ حديث دى﴿ فلايبرک كما يبرک البعير ﴾ (يعنى داوښ په شير دې نه كښيني )دهغه په نزد دبروک الابل معنى داده چې اول ګونډې پر ځمكه باندې كښيږدي بيا لاسونه كښيږدي له كوم څخه چې په حديث شريف كې منع راغلې ده ،برسونږ د ليل هم همدا روايت دى ولى چې اوښ اول لاسونه ايږدى بيا پښې ايږدي له كوم څخه منع شوي ده دلهذا اول ګونډې پر ځمكه ايښودل سنت دي.

ف :دامام شافعي رحمه الله په نزد په سجده کی داوو (۷) اعضاوپر څمکه اینبودل فرض دي ﴿ لحدیث ابن عباس رضي الله عنه قال امر رسول الله ﷺ ان يسجد على سبعة اعضاء ﴾ (حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايې چې رسول الله ﷺ ته پداوو (۷) اعضاؤ سره دسجدي کولو حکم شوي وو )اوهغه اوه اعضاء مخ اودواړه لاسونه اودواړه ګونډې اودواړه پښي دي،داحنافو په نزد دتندي اوپښو پر څمکه په اینبودلو سره دسجدي تحقق راځي، اوتر کومه ځایه چې حدیث دی دهغه په باره کې داحنافو رأیه داده چې داحدیث په ندب باندي محمول دی.

(۸۰)قوله والافتراش رجله اليسرى اى ومن السنن افتراش رجله اليسرى ،يعنى په قعده کی چپه پښه خپرول (غوړول) اوراسته پښه درول سنت دي ،ولی چې له حضرت عائشه رضي الله عنها څخه روایت دی ﴿ان النبى ﷺ كان اذاقعد فرش رجله اليسرى وقعد عليها ونصب رجله اليمنى ﴾(یعنی نبی کریم ﷺ چې به کله په تشهد کې کښیناستو نو چپه پښه به یې پرځمکه غوړوله پرهغه به کښیناستی اوراسته پښه به یې دروله ).

ف:امام شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله په آخیری قعده کې اوامام مالک رحمه الله په دواړه قعدوکې په تورک کولو قائل دي یعنی دواړه پښی دې راسته طرف ته وباسی اوپه کناټودې کښینی ،ولی چې حضور ﷺ تورک کړی دی ، احناف ځواب ورکوي چې دحضور ﷺ تورک د ضعف او سپن ږیروالی په صورت باندي محمول دی.

درکوع اوسجدي په منځ کی سیده دریدل سنت دی ،اودسجدو په منځ کی سیده کښیناستل سنت دي ،لیکن په قومه اوجلسه کی صحیح قول دادی چې دواړه واجب دي ،ولی چې حضور ﷺ همیشه توب بلاترک ورباندي کړی دی اوهمیشه توب بلاترک دوجوب نښه ده،اوهمدارازنبی کریم ﷺ یوه صحرایي ته فرمایلي وو ﴿ثم اركع حتى تطمئن راكعا ثم ارفع حتى تعتدل قائما ثم اسجد حتى تطمئن ساجدا ثم ارفع حتى تطمئن جالسا ﴾ (یعنی دلمانځه دطریقه په ورښودلویې و ویل بیارکوع وکړه تردي حده چې په رکوع کی مطمئن شي اوبیاله رکوع څخه پورته شه سیده ودریږه بیاپه اطمینان سره سجده وکړه بیاله سجدي څخه پورته شه تردومره اندازي کښینه چې ښه مطمین شي )قال ابن عابدين (قوله على مااختاره )قال في البحر ومقتضى الدليل وجوب الطمانينة في الاربعة اى في الركوع والسجود وفي القومة والجلسة ووجوب نفس الرفع من الركوع والجلوس بين السجدتين للمواظبة على ذالك كله وللامر في حديث المسيئ صلاته(ردالمحتار ج ا ص ۳۴۲)

ف:دامام ابویوسف رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله په نزد قومه اوجلسه فرض دي هغوئ په لوړ ذکرشوي حدیث اعرابی سره استدلال کوي ولی چې حضور ﷺ هغه اعرابی ته وویل﴿ ارجع فصل فانك لم تصل﴾ (یعنی بیرته ولاړشه لمونځ وکړه تالمونځ نه دی کړیی )احناف ځواب ورکوي چې داخبرواحددی له خبرواحد څخه فرضیت نه ثابتیږی ،هو وجوب ثابتیږی اوپه وجوب مونږ هم قائل یو.

( ۸۱)والصلاة على النبى ﷺ اى ومن السنن الصلوة على النبى ﷺ ،یعنی دلمانځه له سنتونو څخه په حضور ﷺ باندي درود ویل دي،دامام شافعي رحمه الله په نزدپه لمانځه کی په حضور ﷺ درود ویل فرض دیي.ولی چې دالله جل جلاله امر دی﴿ ياايهاالذين آمنوا صلوا عليه وسلموا تسليما ﴾ ښکاره خبره ده چې خارج له لمانځه څخه په حضور ﷺ باندي درود ویل فرض نه دی نومعلومه شوه چې په لمانځه کې په حضور ﷺ باندي درود ویل فرض دي

،زموږ دلیل دادی چې حضور ﷺ اعرابی ته لمونځ ورښوداو د درود ویلو حکم یې ورته ونه کړنو که فرض وای نوضرور به حضور ﷺ حکم ورته کاوو.
ف:پاتې شوه داخبره چې امام شافعی رحمه الله وایي چې خارج له لمانځه درود ویل فرض نه دي موږ دانه تسلیمه وُ ولی چې امام کرخی رحمه الله ذکر کړي دي چې په ټول ژوندکې په حضور ﷺ باندی یو ځل خارج له لمانځه درود ویل واجب دي په دي وجه چې صلوا د امر صیغه ده او امر د وجوب لپاره مفید دی نو هرکله چې خارج له لمانځه درود ویل واجب شو او په صلوا صیغه سره عمل راغی نو اوس په لمانځه کی دننه د درود شریف د وجوب د ثابتولو ضرورت نشته.

(۸۲)قوله والدعاء ای ومن السنن الدعاء بعد التشهد والصلوٰة ،یعنی له تشهد او درود څخه چې فارغ شي دعاء کول سنت دی لهذا اوس دي د ځان لپاره او د خپل مور او پلار لپاره دعاء وکړي ولی چې رسول الله ﷺ عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه ته له تشهد ورشو دلو څخه وروسته وفرمایل ثم یتخیر من الدعاء اعجبه الیه فیدعو،یعنی له تشهد څخه له فارغیدلو وروسته چې انسان ته کومه دعاء خوښه وی هغه دي وکړي )او همداراز د بخاری شریف روایت دی چې ابوبکر رضی الله عنه نبی کریم ﷺ ته عرض وکړعلمنی دعاء ادعوبه فی صلاتی قال قل اللهم انی ظلمت ظلما کثیرا ولایغفر الذنوب الاانت فاغفرلی مغفرة من عندک وارحمنی انک انت الغفور الرحیم (یعنی حضرت ابوبکر رضی الله عنه حضور ﷺ ته عرض وکړماته کومه دعاء راوښیه چې زه یې په خپل لمانځه کې وایم نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل دادعاء وایه اللهم انی ظلمت الخ ای الله جل جلاله !ماپرخپل ځان باندي ډیرظلم کړی دی اونه بخښي ګناه مګرصرف ته لهذا ته ما وبخښې په خپل بخښښ سره او پرما رحم وکړي صرف ته بخښونکی مهربان یې ).

(۸۳)وادابها نظره الی موضع سجوده (۸۴)وکظم فمه عند التثاؤب (۸۵)واخراج کفیه من کمیه عند التکبیر (۸۶)ودفع السعال ما استطاع (۸۷)والقیام حین قیل حی علی الفلاح (۸۸)وشروع الامام مذ قیل قد قامت الصلوٰة

**ترجمة**:او د لمانځه آداب دادي ،د لمونځ کونکی د سجدي ځای ته کتل ،او خوله پټول د ارمیږی کښلو په وخت کې، او لاسونه له لستوڼو څخه را ایستل د تکبیر ویلو په وخت کې،او د ټوخی دفع کول څومره چې د ده توان او طاقت کیږي، او دریدل کوم وخت چې حی الفلاح وویل شي ،او د امام په لمانځه شروع کول کوم وخت چې قد قامت الصلاة وویل شي.

**تشریح**:(۸۳)کله چې مصنف رحمه الله د لمانځه د سنتونو له بیان څخه فارغ شو نو اوس یې د لمانځه د آدابو په بیان شروع وکړه نو ویې فرمایل چې د لمانځه له آدابو څخه دادی چې لمونځ کونکی دي د لمانځه په حالت کې د سجدي ځای ته ګوري ولی چې دولاړي په حالت کې د سجدي پرځای په نظر ساتلو کې خشوع زیاته ده او تکلف کم دی او کله چې انسان تکلف پریږدي نو نظر د سجدي ځای ته ځي خواه کې قصد وکړي او که یې ونه کړي .
ف ،او د لمونځ کونکی لپاره مستحب دی چې په حالت رکوع کی دي پښو ته ،او په حالت سجده کې پزی ته ،او په حالت قعود کی دي سینې ته ګوري ،او د سلام ګرځولو پروخت دي په خپلو اوږو نظر ساتي ولی چې په دي کې دعاجزي اظهار ډیر دی لما قال شارح التنویر:(ولها آداب)...........نظره الی موضع سجوده حال قیامه والی ظهر قدمیه

حال ركوع والى ارنبة انفه حال سجوده والى حجره حال قعوده والى منكبه الايمن والايسر عندالتسليمة الاولى والثانية ) لتحصيل الخشوع (ردالمحتار ج ا ص ۳۵۳)

(۸۴)قوله وكظم فمه عندالتثاؤب اى ومن اداب الصلوة كظم فمه عندالتثاؤب ،يعني دلمانځه له آدبو څخه دوهم ادب دادی چې دارمیړی كښلوپه وخت كې دحتى الوسع خوله بنده وساتي ولى چې حضور ﷺ فرمايي ﴿التثاؤب في الصلاة من الشيطان ﴾(په لمانځه كى ارميړى دشيطان له طرف څخه دى )اوكه يې دارميږي په وخت كې خوله بنده نه كړاى شوه نوبيادي دي په كيڼ لاس يالستونې سره پټه كړي اوكه دقيام په حالت كې وي نوپه ښى لاس دى پټه كړي لمافى التنوير :(فان لم يقدر غطاه) بظهر (يده) اليسرى وقيل باليمنى لوقائما والا فيسراه مجتبى (اوكمه).(حوالەسابق)

(۸۵)قوله واخراج كفيه اى ومن آداب الصلوة اخراج كفيه من كميه ،يعني دلمانځه لهآدابو څخه دريم آدب دادى چې نارينه دې دتكبيرويلو پروخت لاسونه له لستونو څخه راوباسي ولى چې داتواضع ته زيات قريب دى اودمتكبرينوله مشابهت څخه ليري دى،البته كه اشدضرورت وي مثلا ډيريخ وي بيادې نه راباسي،ښځى دې لاسونه په لستونوكى پټ ساتي لانه استرلها.

(۸۶)قوله ودفع السعال مااستطاع اى ومن آداب الصلوة دفع السعال مااستطاع ،يعني دلمانځه له آداب وڅخه څلورم آدب دادى چې حتى الوسع دې ټوخى كنټرول (بند)كړي ولى چې ټوخى دلمانځه له افعالو څخه نه دى ، ليكن دلته له ټوخى څخه داسې ټوخى مراد دى چې فى الجمله طبيعت دهغه مقتضى وي كه نه نو بلاضروت ټوخى خودلمانځه مفسد دى.

(۸۷)قوله والقيام حين قيل حى على الفلاح اى ومن آداب الصلوة القيام حين قيل حى على الفلاح ،يعني دلمانځه لهآداب څخه پنځم آدب دادى چې كله اقامت كونكى (حى على الفلاح )ووايي نودې ولاړشي ولى چې په دې كى دامر اطاعت اوسبقت الى الاجابت دى،داچې وويل شول چې دحى على الفلاح په وخت كې دې ولاړشي دا بهتره (ښه )ده كه نه نو داقامت په ابتداء كې ياپرخاتمه ولاړيدل هم جائزدي چنانچه كه څوك په يوخاص وخت كې ولاړيدل واجب وګڼي اوله دي څخه اختلاف كونكى ته بدردوايي نودابدعت دى ولى چې كوم شرعى حكم ته دهغه له خپل حيثيت څخه زيات اهيمت وركول هم دومره بددي لكه څومره چې دكوم حكم اهميت دهغه له حيثيت څخه كمول بددي .

(۸۸)قوله وشروع الامام مذقيل قدقامت الصلوة اى ومن آداب الصلوة شروع الامام مذقيل قدقامت الصلوة ،يعني دلمانځه لهآدابو څخه شپږم آدب دادى چې كله مقيم ،قدقامت الصلوة ،ووايي نوامام دې لمونځ شروع كړي ولى چې مقيم امين دى هغه دلمانځه دقيام خبروركړ لهذالمونځ دې شروع كړي ترڅودهغه خبره له درواغو څخه وساتل شي .

ف:ليكن اصح دادى چې داقامت له ختميدلو څخه وروسته دې امام لمونځ شروع كړي لمافى شرح التنوير (وشروع الامام) فى الصلوة (مذقيل قدقامت الصلوة )ولواخر حتى اتمها لاباس به اجماعا وهوقول الثانى والثلاثة وهو اعدل المذاهب كمافى شرح المجمع لمصنفه وفى القهستانى معزيا للخلاصة انه الاصح .قال ابن عابدين رحمه الله (قوله انه الاصح) لان فيه محافظة على فضيلة متابعة المؤذن واعانةله على الشروع مع الامام.(ردالمحتار ج ا ص ۳۵۴)

## فصل

### دافصل دلمانځه دافعالو دکيفيت اوترکيب په بيان کې دی

فصل لغة ددووشيانو په منځ کې مانع اوحائل ته ويل کيږي اوپه اصطلاح کې په دي شان دځينوجزئي مسائلومجموعې ته کومې چې له ماقبل څخه په ممتازدول بيانول مقصودوي دفصل عنوان ورکول کيږي ولی چې داله ماقبل څخه ممتازاوجلادي فصل دلته مصدرپه معنی دفاصل (يعنی دخپل ماقبل اومابعدپه منځ کې جلاوالی راوستونکی )دی ياپه معنی دمفصول (يعنی له ماقبل څخه جلاکړل شوي)دي ،د لفظ فصل وروسته که فی وه نوداله مبتداء محذوف څخه بناء برخبريت مرفوع منون وي ای هذافصل فی کذا،اوکه له ده څخه وروسته فی نه وي نوبناء بروقف دده اخرساکن وي .

وإذا أراد الدخول في الصلاة كبّر (وَرَفَعَ يَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ (٩٠) وَلَوْ شَرَعَ بِالتَّسْبِيحِ أَوْ بِالتَّهْلِيلِ أَوْ بِالْفَارِسِيَّةِ صَحَّ (٩١) كما لو قرأ بها عاجزا أو ذبح وَسَمَّى بِها (٩٢) لا بِاَللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي

**توجمه**:اوکله چې لمونځ کونکی اراده وکړي په لمانځه کې دداخليدلونوتکبيردي ووايې اوپورته دي کړي لاسونه ترڅوچې له غوږونوسره برابرشي ،اوکه شروع کړده په تسبيح سره ياپه تهليل سره ياپه فارسی ژبه سره نوداصحيح ده ،لکه چې په فارسی ژبه کې قرآة وکړي له عربي څخه عاجزکس ياڅاروی ذبح کړي اوبسم الله په فارسی ژبه سره ووايې ،نه په اللهم اغفرلی سره ..

**تشريح**:(٨٩)يعنی چې کله لمونځ کونکی په لمانځه کې دشروع کولواراده وکړي نووجوبًا به تکبيرتحريمه ،يعنی الله اکبر، وايې لقوله تعالی﴿ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ﴾(اودخپل رب لويې بيان کړه )وجه داستدلال مخکې تيره شوې ده. اودتکبيرتحريمه پروخت دي خپل دواړه لاسونودومره اندازه اوچت کړي چې دواړه بتې ګوتې ددواړوغوږونوله نرميوسره برابرې شي ولی چې نبی کريم ﷺ له کله کله ترک سره پردي هميشه والی کړی دی اوله کله کله ترک سره هميشه والی دمسنون والی علامه ده .

**ف**:اودسنتونودبحث په پيل کې تيرشوچې راجح دادی چې اول دواړه لاسونه اوچت کړي بياتکبيروايې .

**ف**:دامام شافعی رحمه الله په نزد به تکبيرتحريمه په وخت کې دواړه لاسونه تراوږو پورته کوي ولی چې حضور ﷺ اوصحابه کرام ﷺ به لاسونه تراوږو پورته کول ،احناف ځواب ورکوي چې تراوږوپوري لاسونه پورته کول په عذر باندي محمول دي يعنی دحضور ﷺ اوصحابه کرامو ﷺ صرف تراوږوپوري لاسونه پورته کول ديخنی له امله وو ، زموږدليل هغه حديث دی کوم چې حضرت وائل ابن حجر ﷺ روايت کړی دی ﴿ أَنَّ النبی صلی الله عليه وسلم کان إذا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ ﴾ (يعنی حضور ﷺ چې به کله د لمانځه په شروع کې تکبيروايو نولاسونه به يې ترغوږوپوري اوچتول).

**ف**،دګونګی په هکله حکم دادی چې هغه به دتکبيرتحريمه اوقرأت لپاره ژبې ته حرکت ورکوي، ځينوعلماؤ دافرض ګڼلي ده ،مګرصحيح داده چې دژبې شورول فرض نه دی بلکه مستحب دی ،قال فی الدر:(ولايلزم العاجزعن النطق )کاخرس وامی (ای تحريک لسانه )وکذافی حق القرأة هوالصحيح لتعذر الواجب فلايلزم غيره الابدليل فتکفی النية (ردالمحتار:ج١ص٣٥٠)

(۹۰)یعنی په لمانځه کې شروع کونکی شخص چې کله ،الله اکبر ،ووایي نوبالاتفاق داشخص په لمانځه کې شروع کونکی دی اوکه چا تسبیح یاتهلیل (یعنی لااله الاالله یاالحمدلله یاسبحان الله یالااله غیره ) وویل نودطرفینو په نزد مع الکراهة داهم جائز ده ،اودامام ابویوسف رحمه الله په نزد که لمونځ کونکی په تکبیر ویلوباندې قادرنه وونوبیاجائزده اوکه په تکبیر ویلوقادر وونوپه له الله اکبر ،الله الاکبر ،اوالله الکبیر څخه په کوم یوه باندې دلمانځه شروع کول جائزده له دې څخه علاء په کوم بل لفظ سره جائزنه ده . دطرفینو رحمهما الله دلیل دادی چې په آیت مبارکه ﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾ (اودخپل رب لوئی بیان کړه )کې دتکبیرذکر دی اوپه لغت کې دتکبیر معنی تعظیم ده اود تعظیم معنی له دې تولو الفاظو څخه حاصلیږي کوم چې موږذکرکړي دي.

ف :دطرفینو قول راجح ده چې هره کلمه دتعظیم ،دالله اکبرقائم مقام کیدلای شي مگر له ،الله اکبر، څخه علاوه په کومه بله کلمه تعظیم سره تحریمه کول (یعنی تړل )مکروه تحریمی ده. لمافی شرح التنویر (وصح شروعه )ایضا مع کراهة التحریم (بتسبیح وتهلیل )وتحمید وسائر کلم التعظیم الخالصة له تعالی ولومشترکة کرحیم وکریم فی الاصح وخصه الثانی باکبر وکبیر ،قال ابن عابدین (قوله خصه الثانی )فلا یصح الشروع عنده الا بهذه الالفاظ المشتقة من التکبیر والصحیح قولهما کمافی النهر والحلیة عن التحفة والزاد (ردالمحتار ج ۱ ص ۳۵۷)

اوهمداشان دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد که یوشخص په فارسی ژبه سره (مراد له عربی څه ماسوا بله ژبه ده )ووایي، خدابزرگ است ،نوداهم صحیح ده ولی چې مقصود تعظیم دی اودامقصود چې له کومې ژبې څخه هم حاصل شي صحیح ده لکه ایمان راوړل چې په هره ژبه سره صحیح ده حال داچې دصاحبینو په نزد بلاعجزه جائز نه ده.

(۹۱)اودااختلاف په قرأة بالفارسی ،کې هم دی چې دعدم عجزپه صورت کې دصاحبینو په نزدجائزنه دی وعلیه الفتوی وصح رجوع ابی حنیفه رحمه الله الی قولهما فی القرأة خاصة کمافی الدرالمختار ج ۱ ص ۳۵۷:البته که په عربی له قرأة کولو څخه عاجزوي نوبالاتفاق جائزدی ، اوکه چادکوم حیوان دذبح کولوپروخت دسم الله پرځای بنام خداووایه نودابالاتفاق جائزدی ولی چې دذبح پروخت شرط ذکردی په کومه ژبه کې چې هم وي.

(۹۲)قوله لاباللهم فاغفر لی ای لایصح شروعه فی الصلوة باللهم اغفرلی ،یعنی که یوچادلمانځه شروع کولوپه وخت کې ، اللهم اغفر لي ، وویل نوداصحیح نه ده ولی چې داخالص تعظیم نه دی بلکه دویونکی له حاجت سره مخلوط دی.

**الالغاز** :ای تکبیر لایکون به شارعا فیها؟

**فقل** :تکبیر التعجب دون التعظیم ،(الاشباه والنظائر)

(۹۳)وَوَضْعُ يَمِينِهِ عَلَى يَسَارِهِ تَحْتَ سُرَّتِهِ (۹۳)مُسْتَفْتِحًا (۹۵)وَتَعَوَّذَ سِرًّا لِلْقِرَاءَةِ فَيَأْتِي بِهِ الْمَسْبُوقُ لَا الْمُقْتَدِي وَيُؤَخِّرُ عَنْ تَكْبِيرَاتِ الْعِيدِ (۹۶)وَسَمَّى سِرًّا فِي كُلِّ رَكْعَةٍ (۹۷)وَهِيَ آيَةٌ مِنَ الْقُرْآنِ أُنْزِلَتْ لِلْفَصْلِ بَيْنَ السُّوَرِ لَيْسَتْ مِنَ الْفَاتِحَةِ وَلَا مِنْ كُلِّ سُورَةٍ

**ترجمه** :اوکښې ږدی راسته لاس په چپه لاس باندې ترنامه لاندې ،دسبحانک اللهم ،دویلوپه وخت کې، اواعوذبالله دې کرار ووایي دقرأة لپاره نوتعوذ به مسبوق وایي نه مقتدی اومؤخردې کړي له تکبیرات عیدینو څخه ،اوتسمیه دې په هر رکعت کې کراره وایي ،اوهغه دقرآن مجید آیت دی کوم چې نازل شوی دی په سورتونو کې دفصل لپاره دسورة فاتحې جزء نه دی اونه دهریوه سورة.

**تشریح:**(۹۳)یعنی له تکبیرتحریمه وېلووروسته دې راسته لاس په چپه لاس باندې ترنامه لاندې کېښېږدي ولې چې دحضرت علی ﷺ اثردی أنّ من السُنّة وضع الیمین علی الشِمال تحتَ السُرّۃ (یعنی راسته لاس په چپه لاس باندې ترنامه لاندې اېښودل له سننونو څخه دي) .

**ف:** دامام مالک رحمه الله په نزد دواړه لاسونه ایله کول افضل دی اوترل یې رخصت دي ولې چې حضور ﷺ همداشان کول، اودامام شافعی رحمه الله په نزد دواړه لاسونه په سینه باندې اېښودل افضل دی لقوله تعالی (فصل لربک وانحر )(یعنی دخپل رب لپاره لمونځ وکړه اوراسته لاس په چپ لاس باندې په سینه کېښږده ) امام شافعی رحمه الله فرمایې چې له ،وانحر، څخه دلته مراد راسته لاس په چپه لاس پرنحر( یعنی سینه) باندې اېښودل دي ،احناف ځواب ورکوي چې له ،وانحر ،څه مراد اضحیه ذبح کول دي ،نه په سینه باندې لاسونه اېښودل.زمونږدلیل دحضرت علی ﷺ مذکوره بالااثر دی ظاهره دی چې دحضرت علی ﷺ اثردامام مالک رحمه الله اودامام شافعی رحمه الله دواړوپه خلاف حجت دی.

**ف:**دلاس نیولوطریقه داده چې دراسته لاس ورغوی پرچپه لاس باندې کېښېښودل شي اوپرمړوند په خنصر(خچی ګوتې)اوبټې ګوتې سره حلقه جوړه کړای شي .ښځې لره بالاتفاق لاسونه پرسینه اېښودل سنت دي اوداحکم دخنثی مشکل هم دی. لما قال شارح التنویر :(ووضع) الرجل (یمینه علی یساره تحت سرته آخذا رسغها بخنصره وابهامه) وهو المختار وتضع المرأة والخنثی الکف علی الکف تحت ثدیها (الدر المختار علی ردالمحتار ج ۱ ص ۳۵۹)

(۹۴)قوله مستفتحا .حال من الضمیر الذی فی وضع ای قارئا سبحانک اللهم .یعنی لمونځ کونکی دي له لاس اېښودلو بعد ثناء ووایي اوثناء سبحانک اللهم الخ ده ﴿لروایة انس ﷺ ان النبی ﷺ کان اذا افتتح الصلوة کبر وقرأ سبحانک اللهم وبحمدک الی آخره ولم یزد علی هذا ﴾(یعنی کله چې به حضور ﷺ لمونځ شروع کوی تکبیر به یې وایو اوسبحانک اللهم الخ به یې ویله).

**ف:**ثناء به مقتدی اوامام دواړه وایي اوکه کوم مقتدی په داسې وخت کې په امام پسې اقتداء وکړي چې امام قرأة شروع کړی وي نواوس باید ثناء ونه وېل شي بلکه هغه ته پکار ده چې په پټه خوله سره دامام قرأة واوري لقوله تعالی ﴿ واذا قرئ القرآن فاستمعوا له وانصتوا ﴾(یعنی کله چې قرآن وېل کېږي نوهغه ته غوږ ونیسئ اوخاموش اوسئ ).

**ف:**البته که په خفیه لمانځه کې څوک دجماعت له شروع کیدلوڅخه وروسته راغی اوشریک شو ښکاره خبره ده چې ده ته نه معلومېږي چې امام قرأة شروع کړی دی اوکه یې نه دی شروع کړی نوپه داسې صورت کې مقتدی ته دثناء وېلو حکم دی خوبیاهم مسبوق ته په کارده چې دتېرشوی رکعت دراګرځولوپه وخت کې هم ثناء ووایي ،لما فی فتاوی قاضی خان :ولو ادرک الامام بعد ما اشتغل بالقرآن ,قال الشیخ الامام ابوبکر محمد بن الفضل ,لایأتی بالثناء وقال غیره یأتی ,بالثناء ,قال مولانا ﷺ ,وینبغی ان یکون الجواب علی التفصیل ان کان الامام یجهر بالقراة لایأتی بالثناء ,ولو کان یسر بالقراة یأتی بالثناء (الخانیه علی هامش الهندیه ج ۱ ص ۸۸ ,باب افتتاح الصلوة ,الفصل الاول )

(۹۵)بیادې کرار تعوذ یعنی اعوذ بالله من الشیطن الرجیم ووایي ﴿ لماروی ابی سعید الخدری ﷺ قال ان رسول الله ﷺ کان یقول قبل القراة اعوذ بالله من الشیطان الرجیم ﴾ (یعنی حضور ﷺ به له قرأة څخه مخکې اعوذ بالله ویله ).اودآهسته وېلو دلیل دحضرت عبدالله ابن مسعود حدیث دی چې امام به څلورشیان کرار وایي له هغوڅه

اعوذ بالله ،اوبسم الله ،اوآمين ،دي، نوچې دامام لپاره داحکم دی نو دمقتدی لپاره خوپه طريقه اولی داحکم دی ،بیاامام ابويوسف رحمه الله اعوذ بالله دثناء تابع بولي ،اودطرفینو رحمهما الله تعالی په نزد دقرأة تابع ده اوراجع هم همدا ده لقوله تعالی ﴿فإذا قرأت القرآن فاستعذ بالله من الشيطان الرجيم﴾ ای اذااردت قراة القران. كذافي الشاميه: لكن مختار قاضی خان والهداية وشروحها والكافي والاختيار واكثرالكتب هوقولهما انه تبع للقراة وبه نأخذ (ردالمحتار ج ا ص ۲٦۲) .لهذا دطرفینو دقول مطابق دمسبوق شخه چې کوم رکعت تیرشوی دی په هغه کې ځرنګه چې پرده قرأة فرض دی په دي وجه به دی اعوذبالله هم وایي ،اوپرمقتدی باندي ځرنګه چې قرأم نشته په دي وجه به اعوذبالله وایي اوداخترونوپه لمانځه کې به په اول رکعت کې له زوائد تکبیراتو شخه وروسته اعوذ بالله وایي ولی چې په اول رکعت کې قرأة له تکبیراتو شخه وروسته ویل کیږي دامام ابويوسف رحمه الله په نزد مقتدی ځرنګه چې ثناء وایي په دي وجه به اعوذبالله هم وایي.

(۹٦)بیادي تسمیه یعنی ،بسم الله الرحمن الرحيم، وایي لمارواه علي ابن ابی طالب رضي الله عنه قال کان رسول الله ﷺ یقرا بسم الله الرحمن الرحيم في صلوته (یعنی حضور ﷺ په لمانځه کې بسم الله الخ ویله )اولمونځ کونکې دي تسمیه کراره وایي ولی چې حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمایي چې امام به ځلور شیان په کراره وایي له هغوځه تسمیه ،اوتعوذ، اوآمين، دي.

ف:امام شافعی رحمه الله فرمایي چې بسم الله دي په لوړاوازسره وایي ولی چې نبی کریم ﷺ به لمونځ په بسم الله سره شروع کاوواوحضرت عمر رضي الله عنه وعثمان رضي الله عنه وعلی رضي الله عنه به تسمیه په لوړاوازسره ویله .احناف ځواب ورکوي چې دنبی کریم ﷺ عمل په تعلیم باندي محمول دی اودخلفاء راشدینو دعمل په باره کې علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمایي چې داپه قوی روایاتوسره ثابت نه دی،زمونږدلیل دحضرت انس رضي الله عنه روایت دی ﴿ما رُوِيَ عن انس رضي الله عنه أنّه قال صَلَّيتُ خَلفَ النبي صلى الله عليه وسلم وَخَلفَ ابي بَكرٍ وَعُمَرَ وَعُثمَانَ فلم أسمَع أحَدًا منهم يَجهَرُ بِبِسمِ اللهِ الرحمن الرَّحيمِ ﴾ (یعنی مادرسول الله ﷺ اوابوبکر اوعمر اوعثمان رضي الله عنهم ترشا لمونځ کړی دی تسمیه په لوړاوازسره ویل ماله یوه شخه هم نه ده اوریدلي).

(۹۷)دبسم الله ذکر په سورة نمل کې دحضرت سلیمان علیه السلام دملکه سباپه نامه په خط کې دی داپه بالاتفاق دقرآن کریم جزء ده ددي شخه انکار کفردی له دي شخه علاوه دامام شافعی رحمه الله دیوه قول مطابق دهر سورة اوددوهم قول مطابق دسورة فاتحی جزء ده .اودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دا (یعنی بسم الله )له سورة نمل شخه علاوه هم دقرآن کریم جزء ده کومه چې په خاص دول سره دسورتونو په منځ کې دفصل راوستلو لپاره نازله شوي ده البته هغه دسوره فاتحه یاکوم بل سورة جزء نه ده ولی چې دحضرت عائشی رضي الله عنها روایت دی ﴿قالت إنّ جبريل عليه السّلام اتى النبي صلى الله عليه وسلم فقال اقرأ باسم ربك الذي خلق الخ﴾ ښکاره خبره ده چې په دي کې دبسم الله ذکرنشته نوکه بسم الله دهرسورة جزء وای نوددي سورة په شروع کې به جبرائیل علیه السلام بسم الله ویلی وای.

**الالغاز** :ای صلوة يسن الجهر ببسم الله الرحمن الرحيم؟

**فالجواب** : انها كل صلوة جهرية قرأ فيها الاية التي فيها البسملة (الاشباه والنظائر)

(۹۸)وَقَرَأَ الفَاتِحَةَ وَسُورَةً او ثَلاثَ آيات (۹۹)وَأمّنَ الإمَامُ وَالمَأمُومُ سِرًّا

ترجمه: او سورة فاتحه دي ووايي او كوم يو سورة يادري آياتونه، او امام او مقتدي دي امين په كراره ووايي

تشريح: (۹۸) يعني لمونځ كونكي دې له تسميه او تعوذ څخه وروسته سورة فاتحه ووايي او له دې سره دې كوم سورة يا دري آياتونه چې له كوم سورة څخه يې خوښه وې ووايي، بيا زموږ په نزد مطلقا قرأة قرآن فرض دې لقوله تعالى ﴿فاقرءوا ما تيسر من القرآن﴾ (له قرآن چې څومره درته آسانه وې وې وايا ست) باقي سورة فاتحه او له هغې سره يو بل سورة يو ځاى كول، دا دواړه زموږ په نزد له واجباتو څخه دي ولې چې د فاتحه ثبوت په خبر واحد سره دى او د ضم سورة ثبوت د حضور ﷺ له مواظبت بلا ترک څخه دى، له كوم څخه چې صرف وجوب ثابتيږى فرضيت نه ثابتيږي.

ف: كه د لمونځ كونكى له الحمد لله څه وروسته د سورة ويل هير شول او ركوع ته ولاړى بيايې په ركوع كې په ياد شو نو بيرته دې ودريږي يو سورة يا درى آياتونه دې ووايي بيا دې دوهم ځل ركوع وكړي د لمانځه باقي اعمال دې ادا ء كړي. لما في الشامية: ترک السورة دون الفاتحة وقنت لم تذكر يعود ويقرأ السورة ويعيد القنوت والركوع، معراج والخانيه وغيرهما (ردالمحتار ج ۱ ص ۳۵۹)

ف: امام شافعي رحمه الله د فاتحې د فرضيت قائل دى لقوله ﷺ ﴿لا صلاة إلا بفاتحة الكتاب﴾ (له فاتحة الكتاب څخه بغير لمونځ نشته) احناف ځواب وركوي چې د مطلق قرأة فرضيت خو د الله ﷻ له ارشاد ﴿فاقرءوا ما تيسر من القرآن﴾ له قرآن څخه چې څومره درته آسانه وي وايا ست يې) څخه ثابت دى، پاتې شو د سورة فاتحه فرضيت هغه ستاله پيش كرده روايت څخه نه ثابتيږي ولې چې دا خبر واحد دى او په خبر واحد سره په كتاب الله باندې زيادت جائز نه دى، هو په خبر واحد سره وجوب ثابتيږي د كوم چې موږ هم قائل يو.

(۹۹) يعني كله چې د سورة فاتحة په آخر كې امام، ولا الضالين، ووايي نو امام او مقتدي دې دواړه آمين كرار ووايي ﴿لما روى ابو هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ إذا أمن الإمام فأمنوا فإنه من وافق تأمينه تأمين الملائكة غفر له ما تقدم من ذنبه﴾ (يعني وي فرمايل كله چې امام آمين ووايي نو تاسو هم آمين ووايا ست د چا آمين چې د ملائكه و له آمين سره موافق شي د هغه تير شوي ګناهونه بخښل كيږي) د امام او مقتدي دواړو د آمين په كراره ويلو دليل د حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ روايت دى چې ﴿أربع يخفيهن الإمام وذكر منها التعوذ والتسميه وآمين﴾ (حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ فرمايي چې امام څلور شيان كرار وايي له هغو څخه تعوذ، او تسميه، او امين، دي) كله چې امام ته د كرار ويلو حكم دى نو مقتدي ته خو به په طريقه اولى سره دا حكم وي.

ف: امام شافعي رحمه الله د آمين په لوړ اواز سره د ويلو قائل دى ﴿لحديث وائل بن حجر ﷺ قال كان رسول الله ﷺ اذا قرأ ولا الضالين قال آمين ورفع بها صوته﴾ (يعني رسول الله ﷺ چې به كله ولا الضالين وايو نو امين به يې په لوړ اواز سره وايو) احناف ځواب وركوي چې علقمه ابن وائل ﷺ له خپل پلار څخه روايت كړى دى په كوم كې چې (وخفض بها صوته) دى يعني آمين يې كرار وايو نو د وائل بن حجر ﷺ په دواړو روايتونو كې څرنګه چې تعارض دى او قاعده ده چې اذا تعارضا تساقطا، په دې وجه د حضرت وائل ابن حجر ﷺ په روايت سره استدلال كول صحيح نه دي.

(١٠٠)وَكَبَّرَ بِلَا مَدٍّ (١٠١)وَرَكَعَ وَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَفَرَّجَ أَصَابِعَهُ (١٠٢)وَبَسَطَ ظَهْرَهُ وَسَوَّى رَأْسَهُ بِعَجُزِهِ (١٠٣)وَسَبَّحَ فِيهِ ثَلَاثًا ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ (١٠٤)وَاكْتَفَى الْإِمَامُ بِالتَّسْمِيعِ وَالْمُؤْتَمُّ وَالْمُنْفَرِدُ بِالتَّحْمِيدِ (١٠٥)ثُمَّ كَبَّرَ وَوَضَعَ رُكْبَتَيْهِ ثُمَّ يَدَيْهِ ثُمَّ وَجْهَهُ بَيْنَ كَفَّيْهِ (بِعَكْسِ النُّهُوضِ (١٠٦)وَسَجَدَ بِأَنْفِهِ وَجَبْهَتِهِ وَكُرِهَ بِأَحَدِهِمَا (١٠٧)أَوْ بِكَوْرِ عِمَامَتِهِ

**ترجمه**:او تکبير دي ووايي بغير له مد كولو ،او ركوع دي وكړي ،او كښېږدي به دي خپل دواړه لاسونه پر خپلو دواړو زنګنو (ګونډو) باندي او ګوتي دي خلاصي كړي ،او ملا دي وغوړوي او سر دي له كوناتو سره برابر كړي، او تسبيح دي ووايي په ركوع كي درې ځله بيا دي سر پورته كړي ،او امام دي صرف سميع الله لمن حمده ووايي ،او منفرد دي سميع الله لمن حمده او ربنا لك الحمد دواړه ووايي او مقتدي دي صرف ربنا لك الحمد ووايي بيا دي تكبير ووايي او پر ځمكه دي خپلي ګونډي كښېږدي ،بيا دي دواړه لاسونه كښېږدي. بيا دي مخ د دواړو ورغوپه منځ كي كښېږدي د پورته كېدو په عكس ،او په تندي او پوزه دي سجده وكړي او په يوه باندي سجده كول مكروه ده ،يا د پګړي په ول باندي.

**تشريح**:(١٠٠)يعني وروسته له قرأة ځخه دي ركوع ته د تللو لپاره فوراً تكبير ووايي ولى چي حضور ﷺ به لمانځه كي د هر ټيټېدو او پورته كېدلو په وخت كي تكبير وايو په تكبير كي دي مد نه پيدا كوي ولى چي د لفظ الله په ابتدا كي مد پيدا كول يا د لفظ اكبر په ابتدا كي مد پيدا كول د دين له نظره خطاء دي ولى چي له آلله .يا ءاكبر ،ځخه د استفهام معنى پيدا كيږي ،يعني د ، آلله اكبر ،معنى داشان كيږي چي أيا ،الله ﷻ لوى دى ؟او په دي سره لمونځ فاسديږي بلكه خيف عليه الكفر ان كان قاصدا ،البته د آواز لوړولو لپاره د لفظ الله په لام باندي مد كي ويل مستحسن دى په دي شرط چي له حد ځخه تجاوز ونه كړي او په آخر كي مد پيدا كول يعني اكبار ويل د لغت له نظره غلط دى.

(١٠١)او ركوع دي وكړي ،په ركوع كي دي په خپلو دواړه لاسونو سره خپلي دواړه ګونډي ونيسي، او د لاسو ګوتي دي خلاصي پرېږدي ﴿لحديث انس رضي الله عنه انه قال ﷺ يا بني إذا ركعت فضع يديك على ركبتيك وفرج بين اصابعك وارفع يديك عن جنبيك﴾(يعني كله چي ته ركوع كوي نو خپل دواړه لاسونه په خپلو دواړو ګونډو باندي كښېږده او د خپلو ګوتو په منځ كي خلاص والى وكړه او خپل دواړه لاسونه له خپلو بغلونو ځخه ليري كړه ).

**ف**:د ګوتو خلاص والي صرف په ركوع كي مستحب دى او صرف د نارينه وُ لپاره سنت دى ،د ښځو لپاره سنت نه دى بلكي ښځي دي خپلي ګوتي سره ضم كړي بزنګنونو دي په لاسونو باندي نه نيسي بلكه صرف لاس دي په زنګنونو باندي كښېږدي ،د ګوتو ضمول صرف په سجده كي مستحب ده او له ركوع او سجدي ځخه علاوه په نورو احوالو كي دي ګوتي په خپل عادت پرېښودل شي.

(١٠٢)په ركوع كي دي ملا هواره او له سر سره برابره وساتي يعني سر دي نه تر ملا لوړه وي او نه دي له ملا كښته كوي ﴿لماروت عائشة رضي الله تعالى عنها انه ﷺ كان يعتدل بحيث لو وضع على ظهره قدح من ماء لاستقر وكذا عن عائشة رضي الله عنها انها قالت كان النبي صلى الله عليه وسلم إذا ركع لم يشخص رأسه ولم يصوبه﴾(يعني حضور ﷺ به ملا برابره وله حتى كه د اُبو پياله د حضور ﷺ په ملا باندي ايښودل شوي واى نو دي پيالى به قرار نيولى واى او همداشان

حضرت عائشة ﵂ فرمايي چې حضور ﷺ به د رکوع په حالت کې نه سرلوړه وي (يعنى ترملا) اونه به يې کښته کاوو.

(۱۰۳) په رکوع کې دې دري ځله سبحان ربى العظيم ووايې او دادري ځله سبحان ربى العظيم ويل د کامل سنت کمه درجه ده ﴿لقوله ﷺ اذا رکع أحد کم فليقل ثلاث مرات سبحان ربى العظيم وذالک أدناه﴾ (يعنى کله چې له تاسو څخه کوم يو رکوع کوي نو په رکوع کې دې دري ځله سبحان ربى العظيم وايې او دا دهغه کمه درجه ده) صاحب منية فرمايي چې اوه (۷) ځله تسبيح ويل کامل سنت دى او پنځه ځله اوسط دى او دري ځله کمه درجه ده.

ف: د رکوع په تسبيح کې که يو څوک د لفظ عظيم ظاء نه شي ويلاى نو سبحان ربى الکريم دې وايې ولى چې په عزيم ويلو سره لمونځ فاسد يږي ، لمافى الشاميه: السنة فى تسبيح الرکوع سبحان ربى العظيم الا ان کان لايحسن الظاء فيبدل به الکريم لئلا يجرى على لسانه العزيم فتفسد به الصلوة کذا فى شرح درر البحار فليحفظ فان العامة غافلون حيث يأتون بدل الظاء براى معجمة (ردالمحتار ج ۱ ص ۳۶۵)

(۱۰۴) له رکوع څخه وروسته د خپل سر د راپورته کولو پر وخت به امام صرف ،سميع الله لمن حمده وايې، او مقتدى به صرف ،ربنالک الحمد ،وايې ﴿لقوله ﷺ إذا قال الإمام سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا لک الحمد﴾ (يعنى کله چې امام سميع الله لمن حمده ،ووايې نو تاسو ربناولک الحمد وايا ست) ظاهره ده چې حضور ﷺ د امام او مقتدى په منځ کې تقسيم فرمايلې دى چې امام دي ،سمع الله لمن حمده ،وايې او مقتدى دي ،ربنا ولک الحمد ، وايې او تقسيم له شرکت سره منافي دى لهذا له امام او مقتدى څخه به يو دهغه بل په ذکر کې شريک نه وي . او منفرد دي تسميع او تحميد دواړه وايې ولى چې هغه د خپل ځان په حق کې امام دى په دي وجه چې د امام په شان پر هغه هم قرأة واجب دى .

ف: صاحبين رحمهما الله تعالى فرمايي چې امام دې هم ،ربناولک الحمد ،کرار وايې ولى چې کله امام نور د حمد په ويلو باعث کوي نو خپل ځان دې هم نه هيروي ،صاحبينو ته ځواب ورکړل شوى دى چې ، الدال على الخير کفاعله، لهذا کله چې مقتديانو ،ربنا ولک الحمد ،ووايو نو امام هم معنى د هغه د ويلو والا شمارل کيږي .ليکن مفتى رشيد احمد صاحب رحمه الله تعالى فرمايي ،د امام د تحميد په باره کې دواړه قوله شته .ويل يې افضل ده ،قال فى شرح التنوير فى سنن الصلوة: ج ۱ ص ۳۴۵ والتسميع للامام والتحميد لغيره ، وقال ابن عابدين (قوله لغيره) اى لمؤتم ومنفرد لکن سيأتى ان المعتمد ان المنفرد يجمع بين التسميع والتحميد وکذا الامام عندهما وهو رواية عن الامام جزم بها الشر بلالى فى مقدمته (احسن الفتاوى ج ۳ ص ۳۱۲)

ف: ،ربنا ولک الحمد ،ته تحميد وايې د تحميد په الفاظو کې تر ټولو افضل ،اللهم ربنا ولک الحمد ،دى بيا ،بحذف الواو اى اللهم ربنالک الحمد ،دى بيا ،بحذف اللهم بذکر الواو ،يعنى ،ربناولک الحمد ،دى تر ټولو آخرى درجه ده ،ربنالک الحمد ،دى لمافى شرح التنوير: وافضله اللهم ربناولک الحمد ثم حذف الواو ثم حذف اللهم فقط ،وقال ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ثم حذف اللهم) اى مع اثبات الواو وبقى رابعة وهى حذفهما والاربعة فى الافضلية على هذا الترتيب کما افاده بالعطف بثم.(ردالمحتار ج ۱ ص ۳۶۷)

(۱۰۵)کله چې لمونځ کونکی له رکوع څخه سیده ودرېږي نوپه تکبیرویلوسره دي سجدي ته ولاړشي ولی چې حضور ﷺ په لمانځه دپورته کیدو اوکښته کیدو په خت کې تکبیر وایو ،سجدي ته دتللوطریقه داده چې اول دې گونډې پر ځمکه کښېږدي بیادي دواړه لاسونه پرځمکه باندي ولګوي اوپه متن کې دننه دبعکس النهوض ، مطلب دادی چې کله له سجدې څخه فارغ شي قیام ته ولاړېږي نودقعود په عکس دې پورته شي یعنی اول دي لاسونه له ځمکی څخه پورته کړي بیادي ګونډې راپورته کړي﴿لمارُوِيَ عن وائلٍ أنّه قال رأيت رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم إذاسَجَدَ وَضَعَ رُكبتيه قبل يَدَيهِ وإذا نَهَضَ رَفَعَ يَدَيهِ قبل رُكبتيه﴾(یعنی مارسول الله ﷺ ولیدي چې کله به سجدي ته تلی نوګونډې به یې تر لاسونو مخکې ایښودلي اوچې کله به له سجدي څخه راپورته کیدی نولاسونه به یې تر ګونډو مخکې راپورته کول ).اودسجدی په حالت کې دې مخ ددواړو ورغوو په منځ کې اودواړه لاسونه دي دغوږونو په برابري کې ایږدي ﴿لحديث وائل بن حجر ﷺ انه ﷺ سجد ووضع وجهه بين كفيه﴾(یعنی حضور ﷺ سجده وکړه نوخپل مخ یې ددواړو ورغو په منځ کې کښېښود ).

(۱۰۶)لمونځ کونکی دي په تندی اوپوزه دواړو باندي سجده وکړي ولی چې نبی کریم ﷺ په همدي شان سجده کولوباندي مواظبت کړی دی ،که له تندی اوپوزي دواړوڅخه صرف په یوه اکتفاء وکړي نوکه یې صرف په تندی باندي اکتفاء وکړه نوداحنافو رحمهم الله تعالی په نزد دابالاتفاق جائز ده ،اوکه یې صرف په پوزه باندي اکتفاء وکړه نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد مع الکراهة جائزده ولی چې په قرآن مجید کې مطلقاً دسجدي حکم شوی دی اوسجده دمخ یوڅه حصه پر ځمکه په ایښودلو سره متحققه کیږي ولی چې تول مخ پرځمکه ایښودل ممکن نه دی،اوبیاله بعض څخه باړخواوزنې بالاجماع خارج دي نوپه مخ کې پوزه اوتندی پاتي شو نومعلومه شوه چې دادواړه دسجدي محل دي په دي وجه له دي دواړوڅخه په کوم یوه باندي اکتفاء کول جائزده .

ف:دتندې په باره کې دا تفصیل دی چې په مطلق تندی باندي سجده کول فرض دی که څه هم دتندی یوڅه حصه پر ځمکه باندي کښېښودل شي البته دتندي اکثره حصه پر ځمکه ایښودل واجب ده لمافي الشامية:اختلف هل الفرض وضع اكثر الجبهة ام بعضها،وان قل؟قولان،ارجحهما الثاني،نعم وضع اكثر الجبهة واجب الخ (ردالمحتار ج ۱ ص ۳۶۸)

ف:دصاحبین رحمهما الله تعالی په نزدبلاعذر په پوزه باندي اکتفاء کول جائزنه ده ،دصاحبینو دلیل هغه حدیث دی کوم چې حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله تعالی عنهما نقل کړی دی چې نبی کریم ﷺ وفرمایل چې ماته په اوه(۷)اعضاو باندي دسجدي کولوحکم شوی دی مګرپه هغه (۷)کې یې دپوزې ذکرنه دی کړی لهذا ثابته شوه چې پوزه دسجدي محل نه دی اوکله چې دسجدي محل نه دی نوپردي اکتفاء کول هم صحیح نه ده . دصاحبینوپر قول فتوی ده ،له امام صاحب څخه هم ددوئ قول ته رجوع ثابته ده ،لماقال شارح التنوير :ومنعاالاكتفاء بالانف بلاعذر واليه صح رجوعه وعليه الفتوى كمافي شرح الملتقى (ردالمحتار ج ۱ ص ۳۶۸) لیکن علامه ابن الهمام رحمه الله په فتح القدیر ج۱ص۲۶۴،کې فرمایې چې که دصاحبینو دوړاندي کړل شوي حدیث په وجه سره صرف په پوزه دسجدي کولوعدم جوازومنل شي نودخبرواحدپه ذریعه به پرکتاب الله باندي زیادت لازم شي لهذاپه دواړوقولونوکې په دي دول سره تطبیق کول مناسب دي چې دامام صاحب قول پرکراهت تحریمي اودصاحبینوقول پروجو ب الجمع باندي حمل کړای شي په دي دول به اختلاف رفع شي

اوله حديث څخه به وجوب ثابت شي كوم چې پركتاب الله باندي زيادت نه دى ،همدا خبره علامه شامي رحمه الله خوښه كړي ده لكه چې فرمايي : فالاشبه وجوب وضعهما معاوكره تركه وضع كل تحريما واذا كان الدليل لاتعضا به فلا باس بالقول به (ردالمحتار ج ۱ ص ۳۶۹).

(۱۰۷) قوله اوبكور عمامته اى وكره بكور عمامته .يعنى كه لمونځ كونكى دپګړى په ول باندي ياپه زياته جامه باندي بلاضرورته سجده وكړي نومع الكراهة جائزده ولى چې له حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى ﴿ان النبى صلى الله عليه وسلم كان يسجد على كور عمامته ﴾ (يعنى حضور صلى الله عليه وسلم دخپلې پګړى په ول باندي سجده كوله) اوهمدا شان حضرت أنس رضي الله عنه فرمايي ﴿كنا نصلي مع النبي صلى الله عليه وسلم في شدة الحر فاذا لم يستطع أحدنا أن يمكن جبهته من الأرض بسط ثوبه فسجد عليه﴾ (يعنى موږ به له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په سخته ګرمي كې لمونځ كوى نو كله چې به يوه له موږ څخه طاقت نه درلود چې مخ پر ځمكه باندي كښيږدي نو خپله جامه به يې خپره كړه او پر هغې به يې سجده كوله )مګر داپه هغه وخت كې ده چې ددفع مشقت لپاره وي او كه ددفع مشقت لپاره نه وي نو بالاجماع مكروه ده.

(۱۰۸) وَأَبدَى ضَبعَيهِ وَجَافَى بَطنَهُ عَن فَخِذَيهِ (۱۰۹) وَوَجَّهَ أَصَابِعَ رِجلَيهِ نَحوَ القِبلَةِ (۱۱۰) وَسَبَّحَ فِيهِ ثَلَاثًا (۱۱۱) وَالمَرأَةُ تَنخَفِضُ وَتَلزَقُ بَطنَهَا بِفَخِذَيهَا (۱۱۲) ثُمَّ رَفَعَ رَأسَهُ مُكَبِّرًا وَجَلَسَ مُطمَئِنًّا وَكَبَّرَ وَسَجَدَ مُطمَئِنًّا (۱۱۳) وَكَبَّرَ لِلنُّهُوضِ بِلَا اعتِمَادٍ وَقُعُودٍ

**ترجمه** :او بازوګان دې له تخرګو څخه لرې كړي ،او نس دې له ورنو څخه لرې كړي ،او دپښو ګوتې دې دقبلې طرف ته متوجه كړي ،او په سجده كې دې دري ځله تسبيح ووايي ،او ښځه دې په سجده كې كښته (ښكته)او سي او نس دې له ورنو سره ونښلوي ، بيا دې سر راپورته كړي په داسې حال كې چې تكبير ويونكي وي او په اطمينان سره دې كښيني ،او تكبير دې ووايي سجده دې وكړي په اطمينان سره بيا دې پورته كيد و لپاره تكبير ووايي په يوشي له تكيه كولو څخه بغير او له كښيناستلو څخه بغير .

**تشريح** :(۱۰۸) دسجدي په حالت كې دي لمونځ كونكى خپل بازوګان له خپلو بغلونو (تخرګو) څخه لري وساتي او خپل نس دي له خپلو ورنو څخه لري وساتي ولى نبى كريم صلى الله عليه وسلم چې به كله سجده كوله نو نس به يې له ورنو څخه لري كاووا وڅنګلي به يې له ځمكې څخه لوري اېښودلي حتى كه دپسه كوچنى بچى دنبى كريم صلى الله عليه وسلم دلاسونو ترمنځ تيريدل غوښتي واى نو تيريداى شواى ،همدا راز نبى كريم صلى الله عليه وسلم حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته وفرمايل ﴿وابد ضبعيك عن جنبيك﴾ (خپل بازوګان له خپلو بغلونو څخه لري وساته ).

**ف**:مګر دبازوګانو له بغلو څه دليري كولو حكم په هغه وخت كې دى چې لمونځ كونكى يواځې وي او كه په صف كې وي نو په دي شان كولو كې نوروته ضرر ده په دي وجه دي له دا شان كولو څخه ځان وساتي لمافى شرح التنوير:(ويظهر عضديه) فى غير زحمة (ردالمحتار ج ۱ ص ۳۷۲)

(۱۰۹) دسجدى په وخت كې دي دپښو ګوتې دقبلې طرف ته متوجه كړي ،لقوله صلى الله عليه وسلم ﴿اذا سجد العبد يسجد كل عضو منه فليوجه من اعضائه الى القبلة مااستطاع ﴾ (نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې كله يو بنده سجده كوي نو دهغه هر عضو سجده كوي بس نو چې څومره طاقت يې وي خپل اعضاء دي د قبلې طرف ته متوجه كړي ).

**ف**:دسجدي په وخت كې دپښو دګوتو پر ځمكه په اېښودلو كې دري قوله دي ،فرض دي،واجب دي،سنت دي،مشهور قول دادى چې دنفس ګوتو اېښودل فرض دي حتى كه چاسجده وكړه او ګوتې يې له ځمكې څخه لوري نيولي وي (يعنى پر ځمكه يې نه كښيښودي )نو جائزنه ده مګر علامه شامي وجوب ته ترجيح وركړي

ده لمافي الشامية :والحاصل ان المشهور في كتب المذهب اعتمادالفرضية والارجح من حيث الدليل والقواعد عدم الفرضية ولذاقال في العناية والدرر انه الحق ثم الاوجه حمل عدم الفرضية علي الوجوب والله اعلم.(ردالمحتار ج ا ص ٣٦٩)

(۱۱۰)لمونځ كونكى دې په سجده كې دري ځله ،سبحان ربى الاعلى، وايې اودا(يعنى دري ځله)دكامل سنت كمه درجه ده ، ،لقوله ﷺ ﴿واذاسجداحدكم فليقل في سجوده سبحان ربي الاعلى ثلاثا وذالك ادناه﴾(يعنى كله چې له تاسو څخه يوسجده كوي نوپه سجده كې دې دري ځله ،سبحان ربى الاعلى ،وايې اودادهغه كمه درجه ده).

(۱۱۱)اودښځې لپاره حكم دادى چې په سجده كې دې ټيټه (كښته )اوسي اونس دي له ورنوسره ښلوي ولى چې په دي شان سجده كولوكې دهغې لپاره سترزيات دى كوم چې دښځې په حق كې مطلوب دى همداشان روايت شوى دى ﴿أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم مَرَّ علي امْرَأَتَيْنِ تُصَلِّيَانِ فقال إذَا سَجَدْتُمَا فَضُمَّا بَعْضَ اللَّحْمِ إلى بَعْضٍ﴾(يعنى نبى ﷺ په دوښځوتيرشوهغوئ لمونځ اداء كاوو نوحضور ﷺ ارشادوفرمايه كله چې تاسې سجده كوى نو خپلې ځينې غوښې له خپلو ځينونوروغوښوسره ښتي وساتئ).

(۱۱۲)قوله ثم رفع راسه اى ثم رفع المصلى راسه ،يعنى بيا چې كله له اولې سجدي څخه سراپورته كوي نوتكبيردې ووايې ولى چې نبى كريم ﷺ په لمانځه كې دكښته كيدواوپورته كيدوپروخت تكبيروايو ،اوپه اطمينان سره دي سيده كښينې ولى چې نبى كريم ﷺ اعرابى ته دتعليم وركولوپه وخت كې وفرمايل چې﴿ثم ارفع راسك حتى تستوى جالسا﴾ (يعنى بيا له سجدي څخه سراپورته كړه ترڅوچې سيده كښينې ) بيادي په تكبيرويلوسره دوهمې سجدي ته ولاړشي .

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دواړوسجدو په منځ كې سرله ځمكې څخه راپورته كول ضروري دى ،البته سوال دادى چې له اولې سجدي څخه په څومره اندازه سراپورته كول ضروري دى؟نو اصح داده چې كه حالت سجدي ته قريب وي نودوهمه سجده معتبره نه ده لهذادالمونځ صحيح نه دى اوكه حالت قعودته ډيرقريب وونوصحيح ده لماقال شارح التنوير:وصحح في الهداية انه ان كان الي القعود اقرب صح والالا ورجحه في النهر والشرنبلالية .(ردالمحتار ج ا ص ٣٧٣)

ف:دسجدي تكرار دحضور ﷺ له فعل څخه په تواتر سره ثابت دى،بيادتكرار په وجه كې مختلف اقوال دي بعض حضرات وايې چې داامرتعبدي دى اودامر تعبدي دليل نه غوښتل كيږي،بعض حضرات بياوايې چې شيطان حضرت آدم عليه السلام ته سجده نه وكړه فرشتوترغيما له ،دوهمه سجده وكړله ،بعض حضرات بيا وايې چې په اولنى سجدي سره دي ته اشاره ده چې الله ﷻ موږله ځمكې څخه پيداكړي يو اوپه دوهمه سجده كې دي ته اشاره ده چې موږبه دوهم ځل دځمكې طرف ته ګرځول كيږو ،قال الله ﷻ ﴿منها خلقنا كم وفيها نعيد كم﴾اوويل شوي دي چې اوله سجده دايمان دشكريه لپاره ده اودوهمه سجده د بقاء ايمان دشكريه لپاره ده.

ف:دنوافلواداء كونكى اومنفرد لپاره ،په ركوع،اوسجده،اوقومه اوجلسه ،كې دهغوتپولواذكار ويل مستحب دى،كوم چې دهمدي مواقعو(ځايونو) لپاره په احاديثو كې وارد شوي دي ،لكه چې دقومه او جلسه په باره كې ،اللهم اغفرلى، يادجلسه په باره كې دابوداؤ دپه روايت كې ،اللهم اغفرلى وارحمنى وعافنى واهدنى وارزقنى ،وارد شوى دى ،اوداحكم دهغه امام لپاره هم دى چې دهغه مقتديان محدود وي اووامام ته معلومه

وي چې دلمانځه اوږدیدل پر هغوئ باندي نه تکلیف کیږي ،کذا فی الشامیة :بل ینبغی ان یندب الدعاء بالمغفرة بین السجدتین خروجا من خلاف الامام احمد ،لابطاله الصلوة بترکه عمدا ،ولم ار من صرح بذالک عندنا ،لکن صرحوا باستحباب مراعاة الخلاف ،وفیه تحت قول الدر المختار :وماورد محمول علی النفل ،ثم الحمل المذکور صرح به المشائخ فی الوارد فی الرکوع والسجود ،وصرح به فی الحلیة فی الوارد فی القومة والجلسة ،وقال ،علی انه ان ثبت فی المکتوبة فلیکن فی حالة الانفراد او الجماعة والماموموں محصوروں لایثقلون بذالک ،کمانص علیه الشافعیة ،ولاضرر فی التزامه وان لم یصرح به مشائخنا فان القواعد الشرعیة لاتنبو عنه .(ردالمحتار ج ۱ ص ۳۷۳)

(۱۱۳)کله چې دوهمه سجده په اطمینان سره وکړي نو دولاړیدو لپاره دې تکبیروو ایې لمارویناء، اوله سجدې څخه دې دخپلو پښو په سینه سیده ولاړشي نه دې بلاعذره جلسه استراحت کوي اونه دې پرلاسوتکیه کوي﴿ لحدیث ابی هریرة ﷺ ان النبی ﷺ کان ینهض فی الصلوة علی صدور قدمیه ﴾ (یعنی حضور ﷺ به دپښوپر سینوولاړیدی).

ف :امام شافعی رحمه الله فرمایي چې ددوهمې سجدې څخه وروسته دې ترقیام مخکې خفیفه جلسه استراحت وکړي ولې چې له حضور ﷺ څخه جلسه استراحت ثابته ده ،احناف ځواب ورکوي چې دحضور ﷺ عمل دعمرپه ډیروالی باندې محمول دی که نه نو نبی ﷺ به دګوتوپه سینوپورته کیدی ، کمافی حدیث ابی هریرة ﷺ ،اوهمداشان حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ جلسه استراحت کړي ده بیایې دهغې د عذرپه وړاندې کولوسره وویل چې مادکمزورۍ په وجه داسې وکړل ، همداشان که جلسه استراحت مشروع وي نوبیابه له جلسه استراحت څخه د پورته کیدوپه وخت کې تکبیرهم مشروع وي.

(۱۱۴)وَالثَّانِيَةُ كَالْأُولَى إِلَّا أَنَّهُ لَا يُثْنِي وَلَا يَتَعَوَّذُ(۱۱۵)(وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلَّا فِي فقعس صمعج (۱۱۶)وإذا فرغ من سجدتي الرّكعة الثّانية افترش رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَجَلَسَ عَلَيْهَا وَنَصَبَ يُمْنَاهُ وَوَجَّهَ أَصَابِعَهُ نحو الْقِبْلَةِ وَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ وَبَسَطَ أَصَابِعَهُ(۱۱۷)وَهِيَ تَوَرُّكٌ(۱۱۸)وَقَرَأَ تَشَهُّدَ ابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه

**ترجمه**:اودوهم رکعت داول په شان دی ماسواله دې چې ثناء ،اوتعوذ ، به نه وایې ،اونه دې لاسونه پورته کوي مګر په، فقعص سمعج کې ،اوکله چې ددوهم رکعت له سجدوڅخه فارغ شي نوخپره دې کړي چپه پښه اوپر هغه دې کښیني اوراسته پښه دې ودروي اودهغې ګوتې دې قبلې ته متوجه کړي ، اوخپل دواړه لاسونه دې په ورنو باندې کښیږدي اوخپرې دې کړي خپلې ګوتې ،اوښځه دې تورک وکړي ،اودابن مسعود ﷺ تشهد دې ووایې .

**تشریح**:(۱۱۴)قوله والثانیة کالاولی ای والرکعة الثانیة کالرکعة الاولی ،یعنی په دوهم رکعت کې دې هغه ټول کارونه وکړي کوم چې په اول رکعت کې کړي دي یعنی قیام ،قرأة ،رکوع وغیره ،ولې چې په دوهم رکعت کې دارکانوتکراردی اوتکرار داول داعادې تقاضا کوي ،البته په دوهم رکعت کې دې استفتاح ،یعنی سبحانک اللهم ،نه وایې ،اونه دې تعوذ ،(یعنی أعوذبالله )وایې ولې چې دا دواړه کلمې په لمانځه کې یوځل مشروع دي په دې وجه چې دنبی کریم ﷺ دلمانځه له روایت کونکوڅخه ددې تکرار ثابت نه دی.

(۱۱۵)او رفع الیدین دې نه کوي مګر په دې اتوځایونوکې دکوموپه شروع کې حروف ،فقعس صمعج ،دي، دکوموچې تفصیل په دې ډول دی چې له ،ف،څخه افتتاح الصلوة مراد ده یعنی دلمانځه په شروع کې دتکبیرویلوپروخت دې دواړه لاسونه پورته کوي ،اوله ،ق،څخه قنوت وترمراد دی یعنی په

وتروکې ددعاء قنوت دشروع کولوپه وخت دې لاسونه پورته کوي ،اوله ،ع، څخه د عیدینو تکبیرات مراد دي اوله ،س، څخه استلام حجر مراد دی یعنی دحجر اسود دمچولو په وخت کې دې دواړه لاسونه پورته کوي،اوله،ص، څخه په صفاء غونډی باندې دتکبیرویلووخت مراددی اوله،م، څخه دمروه په غونډۍ دتکبیرویلووخت مراددی،اوله ،ع، څخه دعرفات ،اوله ،ج، څخه دجمره دویشتلوپه وخت کې دلاسونوپورته کول مراددي ،له دې اتوځایونو څخه ماسوا رفع یدین نشته ولی چې نبی کریم ﷺ فرمایلي دي چې لاسونه دې نه پورته کیږي مګرپه اوو ځایونو کې ،(۱)دتکبیرتحریمه پر وخت (۲)دتکبیرقنوت ویلوپر وخت (۳)په تکبیرات العیدین کې ،اوڅلور تکبیرونه یې په حج کې ذکرکړې دي لهذا دلمانځه له تکبیرتحریمه څخه ماسوا په نوروتکبیراتوکې رفع الیدین نشته ،په حج کې صفاء اومروه دواړه ځایونه یوځائ بللی دی په دې وجه په حدیث شریف کې درفع الیدین تعداد اوه شودلی دی که نه نو په حج کې رفع الیدین په پنځوځایونوکې ده .

ف :داچې وې ویل چې رفع الیدین صرف په اوو ځایونوکې ده له دې څخه مراد داده چې په اووځایونو کې رفع یدین سنت مؤکده ده ،که نه نو له دې اووځایونو څخه علاوه هم رفع الیدین ثابت ده ،لکه چې ددعء اواستسقاء په وخت کې رفع الیدین مستحب دی قال ابن عابدین الشامی رحمه الله :(قوله کالدعاء )ای کمایر فعهما لمطلق الدعاء فی سائرالامکنة والازمنة علی طبق ماوردت به السنة ومنه الرفع فی الاستسقاء فانه مستحب کماجزم به فی القنیة حزانی (ردالمحتار ج ۱ ص ۳۷۵).

ف :د امام شافعی رحمه الله په نزد به رکوع ته دتللوپه وخت کې اوله رکوع څخه دپورته کیدلوپه وخت کې هم رفع الیدین کوي ولی چې له حضور ﷺ څخه په دې ځایونوکې هم رفع الیدین ثابت ده .احناف ځواب ورکوي چې دامنسوخ دی ولی چې له حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څه روایت دی ﴿قال صلیت مع النبی صلی الله علیه وسلم وأبی بکر وعمر فلم یرفعوا أیدیهم إلا عند افتتاح الصلاة﴾(یعنی ماله کریم ﷺ اوحضرت ابو بکر رضی الله عنه اوحضرت عمر رضی الله عنه سره لمونځ کړی دی دغو دریوبه صرف دتکبیر افتتاح په وخت کې رفع الیدین کوله ).

(۱۱۶)یعنی کله چې لمونځ کونکی په دوهم رکعت کې له دوهمې سجدې څخه خپل سر راپورته کړي نوچپه پښه دې خپره کړي اوپرهغې دې کښیني ،اوراسته پښه دې ودروي اودپښوګوتي دې دقبلې طرف ته متوجه کړي ،اولاسونه دې په ورنو کښیږدئ ،اوګوتې دې خلاصې کړي ولی چې حضرت عائشة رضی الله عنها دنبی کریم ﷺ قعودپه همدې کیفیت سره بیان کړی دی .

ف :مصنف رحمه الله صرف دومره وویل ،بسط أصابعه ،داشاره بالسبابة ذکر یې ونه کړ حال داچې اشاره بالسبابة سنت ده او اشاره نه کول دروایت اودرایت خلاف دي ،په دې هکله ترټولو جامع تشریح هغه ده کوم چې حضرت شیخ الاسلام مفتی محمد تقی عثمانی دامت برکاتهم په درس ترمذی کې فرمایلې ده دهغه په الفاظوکې یې ملاحظه کړئ ،باب ماجاء فی الاشارة ،،ورفع اصبعه التی تلی الابهام یدعوبها،،د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما ددې حدیث په بناء دجمهور سلفواوخلفو اتفاق دی چې اشاره بالسبابة مسنون ده اوددې په سنیت باندې ډېر روایات شاهد دي البته څرنګه چې دحنفیه ؤپه ظاهر الروایة اومتون معتبره ؤکې داشارة بالسبابة ذکر نشته نه اثباتا نه نفیا ددې په بناء بعضو متأخرینو اشارة بالسبابة غیرمسنون بللې ده بلکه په خلاصه کیدانی کې

يې بدعت بللي ده او بعضو حضراتو خوبيخي له ډير تشدد نه ياتې څخه كار آخستى دى او په دي مسئله باندې ئې دبحث كولو په وخت كې تردي حده ويلي دي ماراقول اباحنيفه بايد قول رسول الله ﷺ كافى نيست (العياذبالله).

حال داچې حقيقت دادى چې داشاره بالسبابة ،په سنتيت كې معمولې شک هم نشته ولى چې ددې روايات دشهرت ترحده رسيدلي دي اوتركومه چې دحنيفه وّدظاهر الرواية په كتابوكې د اشارة بالسبابة دعدم ذكر تعلق دى نوپه دي وجه خوپه احاديث صحيحه باندي ترک عمل په هيڅ وجه سره صحيح نه دى ولى چې زيات ترزيات داخوعدم ذكردى اوعدم ذكرعدم الشئ ته مستلزم نه وي ، همدا رازپه خپله امام محمد رحمه الله په مؤطاكې داشاره بالسبابة حديث ذكركړى دى اوفرمايلي يې دي ، قال محمد :وبصنع رسول الله ﷺ ناخذ وهو قول ابو حنيفه رحمه الله ،له دې تصريح څخه وروسته دكومې شبه څه گنجائش پاتې كيږي .

پاتي شوه دخلاصه كيداني خبره هغه خو دفقه حنفى كوم معتبر كتاب نه دى بلكه دهغي مصنف هم نامعلوم دى علامه شامى رحمه الله په شرح عقود رسم المفتى كې ليكي چې محض ددي كتاب په كتلو سره فتوى وركول جائزنه دي په اصل كې داشاري منكرينوته چې دكوم شخصيت په فتوى سره ډيرتقويت حاصل شوهغه مجددالف ثانى رحمه الله دى ده په خپل مكتوبات كې داشارة بالسبابة له سنّيت څخه انكار كړيدى اوپردي يې طويل بحث كړى دى چې دهغه خلاصه داده ،چې داشارة بالسبابة احاديث مضطرب المتن دي ولى چې داشاري دهيئتونوپه بيان كې شديد اختلاف دى اوكه داضطراب پر بناء حنفيه دقلتينو حديث رد كولى شي نوداشاره بالسبابة احاديث هم په دي بناءرد كيداى شي .

ليكن دانصاف خبره داده چې دمجددألف ثانى دجلالت قدر اوعلوشان سره سره په دي مسئله كې دده تائيد نه شي كيدلاى ،لان الحق ان الحق ليس معه فى هذه المسئلة ،لكه چې حضرت شاه صاب رحمه الله دحضرت مجددألف ثانى د استدلال ځواب كې وايې چې داشارې دهيئت په هكله چې په رواياتوكې كوم اختلاف دى دي اختلاف ته اضطراب نه ويل كيږي ولى چې اضطراب هغه وخت وي چې حديث يو وې اودهغه په الفاظو كې ناقابل تطبيق اختلاف وې اودلته دا صورت نه دى ولى چې دا اختلاف ديوه حديث دالفاظو اختلاف نه دى بلكه دډيرو صحابه كرامو درو ايتونو اختلاف دى اوددي اختلاف په اساس دټولو رواياتو دا قدر مشترک نه شي رديدلى چې اشاره فى التشهد مسنون ده په داسې حال كې چې ددي قدرمشترک ثبوت هم په شهرت سره وي،له دي ماسوا ددي پرسنيت اجماع هم ده،بياتر كومه ځايه چې ددي دمختلفو هيئتونو تعلق دى هغه په حقيقت كې دواقعاتوبزماني اختلاف دى چې كله نبى كريم ﷺ په يوه هيئت سره اشاره كړي ده او كله يې په بل هيئت سره ،دي اختلاف ته دمحدثينو داصطلاح مطابق اضطراب نه ويل كيږي ،اوداشارى چې كوم هيئتونه په احاديثوكې ثابت دي له دي څخه په هر يوه باندي عمل كول جائزدى ليكن زموږپه نزدترجيح دي ته حاصله ده چې په ابهام (بټه گوته )اووسطى سره يوه حلقه جوړه شي اوپه سبابه سره اشاره وكړل شي، فيرفعها عند النفى (اى لااله) ويضعها عند الاثبات (اى الاالله) (درس ترمذى :ج٢ص٦٢)

دحضرت مجدد ألف ثانی رحمه الله دفتوی په باره کې حضرت شیخ الحدیث مولانا سلیم الله خان دامت برکاتهم فرمایي: مجددالف ثانی رحمه الله د اشارې مخالف ووپه دې وجه چې په هغه وخت کې داحادیثو دومره کتابونه نه وو چاپ شوي په دې وجه هغه ته علم نه وو حاصل شوی . (مجالس علم وذکر ج۱ص۵۶)

ف :دبعضو اکابرینو په فتاوی کې مې لیدلی دی چې داشارې وروسته دې داشارې کیفیت بالکلیه نه ختموي بلکه دشهادت گوته دې لږڅه راکښته کړي اودبعضو شوافعو اومالکیه ؤ څخه هم منقول دي چې اشاره بالسبابة دې دلمانځه تر اختتام پورې برقرار وي ،مگر علامه ظفراحمد عثمانی رحمه الله فرمایي چې فتوی زموږ په نزد پردې ده چې پر لااله دې اشاره وکړي اوپه الاالله دې اشاره ختمه کړي ولی چې په حدیث شریف کې دبسط سبابه ذکر دی اوبسط اشارې ته مستلزم نه دی نوددې مطلب دادی چې سبابه دې له نورو گوتو سره نه ملگرې کوي دا نه چې اشاره دې برقرار روساتي :ولایخفی ان بسط السبابة اعم من الاشارة..........وقد عرفت ان الفتوی عندنا علی ان یرفع عند النفی ویضع عند الاثبات وسیاتی الجواب عن روایة ابی داؤد هذه (اعلاء السنن ج۳ص۱۱۰)........ومارود فی حدیث ابی یعلی عن عاصم بن کلیب عن أبیه عن جده ،انه ﷺ قبض اصابعه ویشیر بالسبابة ،وهو یقول :یامقلب القلوب ثبت قلبی علی دینک ،کما ذکره القاری فی تزیین العبارة (ص:۸) وهو یدل علی عدم وضع السبابة علی قوله :الا الله ،بل یشعر ببقاء الاشارة الی وقت الدعاء فی آخر الصلوة .فالجواب عنه انه اراد بقوله :یشیر بالسبابة ،انه لم یقبضها مثل غیرها من الأصابع بل کانت مبسوطة ،فعبر البسط بالاشارة ،یدل علیه روایة الترمذی بلفظ :بسط السبابة ،والله اعلم .وایضا فلم أقف علی صحة هذه الروایة التی اخرجها ابو یعلی ،یمکن الجمع بین الروایتین بما قررناه آنفا علی تقدیر صحتها ،فلا اشکال (اعلاء السنن ج۳ص۱۱۳)

(۱۱۷)دښځې لپاره حکم دادی چې په التحیات ،کې په تورک کولو سره کښیني یعنی دواړې پښې دې راسته طرف ته وباسي اوپر چپه کوناټي دې کښیني ولی چې په دې شان ناسته کې ستر ډیر دی کوم چې دښځې په حق کې مطلوب دی .

ف :صاحب الجوهره ویلې چې دښځې لمونځ په لسوځایو کې دنارینه دلمانځه څخه مختلف دی ښځه به دتکبیرتحریمه په وخت کې خپل لاسونه تراوږو پورته کوي ،اوراسته لاس به په چپه لاس ترسینې لاندې ایږدي ، اونس به له ورنوڅه نه لرې کوي ، اوبازوگان به له بغلوڅه نه لرې کوي اوپه تشهد کې په تورک کښیني، اوپه رکوع کې به د ،لاس، گوتې نه خلاصوي اودنارینه و امامت به نه کوي ددوئ جماعت مکروه دی که چیرته وونو امامت کونکې به دصف په منځ کې درېږي ،په موضع جهر کې به قرأت په لوړ اوازسره نه وایې .

(۱۱۸)قوله وقرأتشهدابن مسعود رضی الله عنه ای وقرأ المصلی تشهد ابن مسعود ،یعنی لمونځ کونکی به اوس دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه تشهد ولولي .تشهد له صحابه کرامو رضی الله عنهم څخه په مختلفو الفاظو مروی دی حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه داالفاظ نقل کړي دي التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ (یعنی ټول قولی عبادات اوټول فعلی عبادات اوټول مالی عبادات صرف الله جل جلاله لره دي اوای نبی ﷺ پرتا دې سلام وي اودالله تعالی رحمت اودهغه برکتونه ،اوسلام دې وي پرموږ اودالله تعالی پرنیکانو بندگانو باندې زه ددې خبرې گواهي ورکوم چې له الله تعالی ماسوا څوک معبود نشته اوزه گواهي ورکوم چې محمد ﷺ دالله تعالی بنده اودهغه رسول

دی )حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ته نبی کریم ﷺ په ډیر اهتمام سره دمذکوره بالاتشهد تعلیم ورکړی دی لکه چې فرمایي ،اعلمنی رسول الله ﷺ بیدی و علمنی التشهد کما کان یعلمنی سورة من القرآن وقال قل التحیات لله الخ (یعنی نبی کریم ﷺ زمالاس ونیوی اوماته یې تشهدراوښودی لکه چې ماته کوم سورة له قرآن مجیدڅخه راښودی اووي فرمایل قل التحیات لله الخ )نو احنافو دعبدالله ابن مسعود ﷺ تشهدمختار کړ.

ف: حضرت عبدالله بن عباس ﷺ دتشهد دالاندي الفاظ نقل کړي دي التحیات المبارکات الصلوات الطیبات لله سلام علیک أیها النبي ورحمة الله وبرکاته سلام علینا وعلی عباد الله الصالحین أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمدا رسول الله ،د حضرت ابن عباس ﷺ تشهدامام شافعی رحمه الله مختارکړی دی ،احناف ځواب ورکوي چې حضرت ابن عباس ﷺ په خپل دي تشهدسره متفرددی ،همدارازددي په الفاظوکې ټول روات متفق هم نه دي حال داچې دحضرت ابن مسعود ﷺ روایت په ټولوصحاح سته وکې مروی دی اوددي په الفاظوکې چیرته کوم اختلاف نشته ،همدارازنبی کریم ﷺ دتعلیم تشهدپروخت دحضرت ابن مسعود ﷺ لاس نیولی ووکوم چې دانتهائي اهتمام علامه ده اونوروخلګوته دورښودلو امریې هم کړی وواوامرلږترلږه داستحباب لپاره وي په دي وجه دابن مسعود ﷺ تشهدراجح دی.

ف:لمونځ کونکی به دفرض لمانځه په قعده اولی کې پرمذکوره بالاتشهداضافه والی نه کوي اوکه چاپه هیره سره داللهم صل علی محمد،یاله دي څخه دزیات اضافه والی وکړنوپرده سجده سهوواجب ده اوکه یې مذکوره بالااضافه عمداوکړه نوداممکروه ده اودلمانځه اعاده واجب ده کمافی شرح التنویر:(ولایزید)فی الفرض (علی التشهدفی القعدة الاولی)اجماعافان زادعامدا کره )فتجب الاعادة (اوساهیاوجب علیه سجود السهو اذاقال اللهم صل علی محمد)فقط(علی المذهب)المفتی به(الدر المختار علی هامش ردالمحتار: ۱/۳۷۷، کذافی الدر المنتقی علی هامش مجمع الانهر: ۱/۱۵۲)

**سوال** :په لمانځه کې السلام علیک ایهاالنبی انشاءً ویل کیږي اوکه حکایةً ؟بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب** :السلام علیک ایهاالنبی بلکه ټول تشهدانشاءً ویل کیږي ،قال فی شرح التنویر:ویقصد بالفاظ التشهدمعانیهامرادة له علی وجه الانشاء کانه یحیی الله تعالی ویسلم علی نبیه وعلی نفسه واولیائه لاالاخبارعن ذالک ،ذکره فی المجتبی وظاهره ان ضمیر علیناللحاضرین لاحکایة سلام الله تعالی ،وفی الشامیة :(قوله لاالاخبارعن ذالک )ای لایقصدالاخبار والحکایة عماوقع فی المعراج منه ﷺ ومن ربه سبحانه ومن الملائکة علیهم السلام وتمام بیان القصة مع شرح الفاظ التشهدفی الامدادفراجعه (قوله لاحکایة سلام الله تعالی)الصواب لاحکایة سلام رسول الله ﷺ (ردالمحتار: ج۱)

له قرأت څخه ماسوادلمانځه ټولې وظائفې انشاء ویلې کیږي .لکه چې دلمانځه په حقیقت له غورکولو څخه ښکاریږي. دحقیقت صلوة دتفصیل لیکلوخونه په دي وخت کې ضرورت شته اونه هم فرصت لهذاصرف دالسلام علیک ایهاالنبی حکمت تحریرکیږي ،له دربارسلطانی څخه دواپس کیدلو په وخت دڅه نذرانې دوړاندي کولودستوردی ،په دي وجه مصلی دالتحیات لله والصلوت والطیبات نذرانه وړاندي کوي ،بیایودم خیال پیداکیږي چې داقرب الهی اومناجاة بالرب صرف دسید الکونین ﷺ دوجودمسعودپه دولت دی ،دهدایت ذریعه صرف دنبی کریم ﷺ وجوددی نوبې ساخته مصلی پرخپل محسن اعظم ومنعم اکرم ﷺ باندي سلام لیږي ،پاتې شوداعتراض بالکل لغوه دی چې کله نبی کریم ﷺ حاضرنه دی نوخطاب بې فائدي دی ،په دي وجه چې صلوة وسلام دملائکه په ذریعه سره دنبی کریم ﷺ خدمت ته رسیږي لکه چې

په خط کې دخطاب صيغې صرف ددي لپاره ليکل کيږي چې خط مخاطب ته رسيږي ،مخاطب مخامخ موجودنه وي فقط والله تعالى اعلم (احسن الفتاوى :۴۸/۳)

(۱۱۹) وَفِيمَا بَعْدَ الْأُولَيَيْنِ اكْتَفَى بِالْفَاتِحَةِ (۱۲۰) وَالْقُعُودُ الثَّانِي كَالْأَوَّلِ (۱۲۱) وَتَشَهَّدَ وَصَلَّى على النبي صلى الله عليه وسلم (۱۲۲) وَدَعَا بِمَا يُشْبِهُ أَلْفَاظَ الْقُرْآنِ وَالسُّنَّةِ لَا كَلَامَ الناس (۱۲۳) وسلم مع الإِمَامِ كَالتَّحْرِيمَةِ عَنْ يَمِينِهِ وَيَسَارِهِ (۱۲۴) نَاوِيًا الْقَوْمَ وَالْحَفَظَةَ وَالْإِمَامَ فِي الْجَانِبِ الْأَيْمَنِ أَوِ الْأَيْسَرِ أَوْ فِيهِمَا لَوْ مُحَاذِيًا وَالْإِمَامُ يَنْوِي الْقَوْمَ بِالتَّسْلِيمَتَيْنِ

**ترجمه** ،اوله اولنيو دوركعتونو څخه وروسته دي اكتفاء وكړي پرفاتحه ،اوقعود ثاني داول په څيرده، اوتشهد دي ولولې اوپرنبی کريم ﷺ دي درود ووايې ،اوداسې دعاء دي وكړي كومه چې دقرآن يا حديث له الفاظو سره مشابه وي نه دخلكو له كلام سره ،اوسلام دي وګرځوي له امام سره دتحريمې په شان خپل ښی اوكيڼ طرف ته ،په نيت كولو سره دقوم، دحفظه فرشتو ،اودامام په ښی ياكيڼ طرف كې ياپه دواړو كې كه امام په محاذات كې وي اوامام دي په دواړو سلامونو كې دقوم نيت وكړي .

**تشريح** :(۱۹)لمونځ كونكى به دفرض لمانځه له اولنيو دوركعتونو څخه په وروسته كې صرف پرفاتحه اكتفاء كوي يعنى دماپښين ،مازديګر اوعشاء په آخيري دووركعتونو كې اودمغرب په آخيري يوه ركعت كې به صرف سوره فاتحه وايې ﴿لحديث ابى قتادة ﷺ انه ﷺ كان يقرا فى الظهر فى الاولين بام الكتاب وسورتين وفى الاخرين بام الكتاب﴾ (يعنى نبى كريم ﷺ به دظهر په اولنيو دووركعتونو كې سوه فاتحه اونور سورتونه ويل اوپه اخيري دووركعتونو كې به يې صرف سوره فاتحه ويله )،هودنوافلو په هرركعت كې سورت يوځاى كول هم ضروري دى كماسيأتى ان شاء الله تعالى .

**ف**:دقول راجح اومحقق په مطابق لمونځ كونكى ته دفرض لمانځه له اولنيو دووركعتونو څخه وروسته اختيار دى كه يې خوښه وي سوره فاتحه دي ولولې ،اوكه يې خوښه وي نورتسبيحات دي ووايې اوكه يې خوښه وي بقدرركن دي خاموش ودريږي،البته فاتحه لوستل افضل دي كمافى الدرالمختار:واكتفى المفترض فيمابعدالاولين بالفاتحة فانهاسنة على الظاهر،وهو مخير بين قرأة الفاتحة ............ولتسبيح ثلاثا وسكوت قدرها،وقال العلامة الشامى:بعدمابسط فيه،اعلم انهم اتفقوا فى ظاهر الرواية على ان قرأة الفاتحة افضل وعلى انه لواقتصر على التسبيح لايكون مسيئا واما لوسكت فصرح فى المحيط بالاساءة ...........وصرح غيره بالتخيير بين الثلاثة فى ظاهر الرواية وعدم الاساءة بالسكوت .قال فى البدائع :والصحيح جواب ظاهر الرواية لماروينا عن على وابن مسعود رضى الله عنهما انهما كانا يقولان :المصلى بالخيار فى الاخريين ان شاء قرأ وان شاء سكت وان شاء سبح وهذاباب لايدرك بالقياس فالمروى عنهما كالمروى عن النبى ﷺ وفى الخانية :وعليه الاعتماد،وفى الذخيرة :هو الصحيح من الرواية ورجح ذالك فى الحلية بمالامزيدعليه ............فقداتفق الكل على افضلية القرأة ............ثم اعلم ان اتفاقهم على افضلية الفاتحة لاينافى التخيير اذلامانع من التخيير بين الفاضل والافضل كالحلق مع التقصير (الدرالمختار مع الشامية: ۱/۴۷۷)

(۱۲۰)لمونځ كونكى به په قعده اخيره كې پرهغه هيئيت كښيني پركوم هيئيت چې پرقعده اولى كښينستى وو ولى چې حضرت عائشې ﷺ دنبى كريم ﷺ ناسته پرهمدي كيفيت سره بيان كړي ده . دامام مالك ﷺ په نزد به په دواړو قعدو كې تورك كوي ،دامام شافعى ﷺ په نزد به په قعده اخيره كې تورك كوي يعنى ددوئ په نزد دښځو په شان په كناتو كښينستل مسنون دي ولى چې له نبى كريم ﷺ څخه تورك ثابت دى ،احناف ځواب وركوي چې دنبى كريم ﷺ تورك دعمر دډيروالي پروخت محمول دى .

(۱۲۱)په اخيره ناسته کې دي تشهدوايي ،اوتشهدويل زموږپه نزدواجب دي له تشهدڅخه وروسته دي درودشريف ووايې دردودويل مسنون دي دليل دحضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ حديث دی «اذا قلت هذا او فعلت هذا فقد تمت صلاتک» (کله چې نبی کريم ﷺ عبدالله ابن مسعود ﷺ ته دتشهدتعليم ورکړوي فرمايل چې کله ته دا ووايې ياېې وکړې نوستالمونځ پوره شوه )وجه استدلال داده چې په حديث کې دلمانځه پوره والی په تشهداوقعده اخيره کې په يوه پوري معلق کړل شوی دی اوپردي اتفاق دی چې دلمانځه پوره والی په قعده اخيره پوري معلق دی اوکله چې پرقعده اخيره پوري معلق شونوقرأة تشهدپوري معلق نه دی که نه نو په لفظ حديث کې چې په لفظ داوسره اختياروركړل شوی دی هغه اختيارباقی نه پاتې کيږي لهذاتشهدفرض نه دی ،همداشان درودشريف هم فرض نه دی که نه نو داتمام صلوة تعليق به په دري شيانوپوري راشي حال داچې په حديث شريف کې اتمام صلوة صرف په دووشيانوپوري معلق دی .دامام شافعی رحمه الله په نزدقرأة تشهداودرودشريف ويل فرض دي حتی که چاپرينبودل نودهغه لمونځ نه صحيح کيږي.

(۱۲۲)يعنی له درودشريف څخه وروسته چې لمونځ کونکی کومه دعاء وغواړي کولی يې شي مګرددعاء الفاظ به دقرآن له الفاظوسره مشابه وي لکه اللهم اغفرلی ولوالدی الخ ياربنا اتنافی الدنيا حسنة وفی الاخرة حسنة الخ .يادي دعاوسره مشابه چې کومې دعاوي له نبی کريم ﷺ څخه مروی دي لکه چې حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ په دي الفاظوسره دعاء کولو اللهم اسئلک من الخير کله ماعلمت منه ومالم اعلم واعوذبک من الشر کله ماعلمت منه ومالم اعلم.

په داسي الفاظوسره دي دعاء نه کوي کوم چې له کلام الناس سره مشابه وي مثلاداسې شيانوغوښتل چې دهغه له بنده څخه غوښتل محال نه وي لکه اللهم زوجنی فلانة ولی چې داله کلام الناس سره مشابه ده اودکوموشيانوچې له بندګانوڅخه غوښتل محال وي لکه اللهم اغفرلی نوداله کلام الناس سره مشابه نه دي لهذاداجائزدي .

(۱۲۳)قوله وسلم مع الامام کالتحريمة ای سلم مقارنامع الامام کماانه يحرم مقارنالتحريمة الامام ،يعنی بيادي له امام سره ښی اوکيڼ طرف ته سلام وګرځوي لکه څرنګه چې په شروع کې له ده سره الله اکبرويلی وولی چې دواړه طرف ته سلام ګرځول په روايت ثابت دي لکه چې حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ فرمايي «ان النبی ﷺ کان يسلم عن يمينه وعن يساره السلام عليکم ورحمة الله السلام عليکم» (يعنی نبی کريم ﷺ به ښی اوکيڼ طرف ته سلام ګرځاوواوفرمايل به يې السلام عليکم ورحمة الله ،السلام عليکم ورحمة الله )،اوله امام سره دسلام ګرځولووجه داده چې دتکبيرپه باره کې ارشاددی «اذا کبر الامام فکبر» (کله چې امام تکبيروواېې نوتاسې هم تکبير ووايااست )لفظ اذادوخت لپاره دی ای کبرواوقت تکبيرالامام لهذاپه تکبيرکې معيت ثابت شونوپه سلام ګرځولوکې هم دمعيت حکم دی ولی چې تکبيرتحريمه اوسلام دلمانځه دوه غاړې دي لهذايوه به پربله قياسيږي ،داله امام صاحب څخه يوروايت دی دوهم راويت دادی چې دامام له سلام ګرځولوڅخه وروسته دي سلام وګرځوي ولی چې دتکبيرويلووخت دشروع عبادت وخت دی په کوم کې چې مبادرت مطلوب دی اودسلام دګرځولووخت له عبادت څخه دوتلووخت دی په کوم کې چې دمبادرت ضرورت نشته ،دامام مالک رحمه الله

په نزد صرف مخامخ سلام ګرځول دي مذکوره بالا د حضرت ابن مسعود ﷺ حديث پر امام مالک ﷫ حجت دی.

(۱۲۴) قوله ناويا للقوم والحفظة ،حال من الضمير الذي في سلم اى حال كونه ناويا للقوم والحفظة ،يعنى په سلام ګرځولو کې دي دواړو طرفونو مقتديانو او محافظو فرشتو ته دسلام کولو نيت وکړي ،او په خپله امام دي په دواړو جانبو کې مقتديانو او فرشتوته دسلام کولو نيت وکړي وجه داده چې تراوسه له خپل رب سره په مناجات کې دمشغول والی په وجه سره ګوياله مخلوق څخه غائب وو اوس دمناجات پراختتام ګويا حاضر يږي لهذا موجودينو ته دي سلام کوي .

(۱۲۵) وَجَهَرَ بِقِرَاءَةِ الْفَجْرِ وَأُولَيَيِ الْعِشَاءَيْنِ وَلَوْ قَضَاءً وَالْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ (۱۲۶) وَيُسِرُّ فِي غَيْرِهَا كَمُتَنَفِّلٍ بِالنَّهَارِ (۱۲۷) وَخُيِّرَ الْمُنْفَرِدُ فِيمَا يَجْهَرُ كَمُتَنَفِّلٍ بِاللَّيْلِ (۱۲۸) وَلَوْ تَرَكَ السُّورَةَ فِي أُولَيَيِ الْعِشَاءِ قَرَأَهَا فِي الْأُخْرَيَيْنِ مَعَ الْفَاتِحَةِ جَهْرًا وَلَوْ تَرَكَ الْفَاتِحَةَ لَا

**ترجمه** :او په زوره (لوړ آواز) سره دي وايي قرأة د فجر او مغرب او عشاء په اولنيو دو رکعتونو کې که څه هم قضاء وي او په جمعه کې او عيدينو کې ،او سوکه دي وايي له دي څخه په علاوه کې لکه په ورځ کې نفل اداء کونکی ،او اختيار دی منفرد لره په جهری لمانځه کې په شپه کې د نفل کونکی په څير ،او که يې پريښودی سورة د عشاء په اولنيو دوو رکعتونو کې نو وايي دي په اخيري دوو رکعتونو کې له فاتحه سره په زوره او که يې فاتحه پريښوده نو نه دي وايي .

**تشريح** :(۱۲۵) يعنی لمونځ کونکی که امام وي نو د فجر په دواړو رکعتونو او د ماښام او عشاء په اولنيو دوو رکعتونو کې دي په لوړ اوازسره قرأة وايي که څه هم د دي لمونځونو قضاء راوړي همدشان دي په جمعه او عيدينو کې په لوړ اوازسره قرأة وايي او په باقی رکعتونو يعنی دمغرب په دريم او دعشاء په اخيري دوو رکعتونو کې دي قرأة اهسته وايي وجه يې داده چې په شروع کې نبی کريم ﷺ په ټولو لمونځونو کې قرأة په لوړ اوازسره وايو او مشرکينو چې به د ده ﷺ قرأة واوريدلو ده ﷺ ته به يې ضرر رساوو بيا الله تعالی دا آيت نازل کړ﴿ولا تجهر بصلاتک ولا تخافت بها وابتغ بين ذالک سبيلا﴾ (يعنی مه په ټولو لمونځونو کې جهر کوه او مه په ټولو کې اخفاء کوه بلکه د دي دواړو د ماېين لاره اختيار کړه )چنانچه نبی کريم ﷺ له دي څخه وروسته په ظهر او عصر کې اخفاء شروع کړه ولی چې په دي دوو وختونو کې کفار و تکليف نه رسول باقی دمغرب په وخت کې هغوئ په خوړک مشغول وو او په عشاء او فجر کې به د خوب په وجه سره غافل او سيدل په دي وجه نبی کريم ﷺ په دي وختونو کې جهر فرمايو .او د جمعه او عيدينو لمونځونه ځکه چې په مدينه منوره کې قائم شول چيرته چې د ايذاء کفار و عذر نه وو په دي وجه يې په دي لمنځونو کې قرأة په لوړ اوازسره وايو بيا له زوال عذر څخه وروسته هم قرأة په همدي کيفيت برقرار پاتې شو ،همدا راز په دي وجه هم په جهری لمنځونو کې جهر او په سری لمنځونو کې اخفاء واجب ده چې د نبی کريم ﷺ له عهد مبارک څخه نيولې بيا ترنن پورې په جهری لمنځونو کې پر جهر او په سری لمنځونو کې پر اخفاء د ټول امت اجماع ده .

**ف**:که امام په جهری لمانځه کې د سورة فاتحه دومره مقدار سرا و وايو چې په هغه سره لمونځ جائز وو يعنی ديرش حروف يې سرا و ويل اوس ورپه ياد شو چې دا خو جهری لمونځ دی نو د سرا ويلې مقدار اعاده دي نه کوي ولی چې اعاده نقصان لره جبيره نشته بلکه له دي څخه وراندې دي په جهر سره و وايي او په اخير کې دي

سجده سهو وکړي لمافي الشامية: ان الامام لوخافت ببعض الفاتحة اوكلها او المنفرد ولم اقتدى به رجل اعادها جهرا كمافي الخلاصة وقيل لم يعدو جهرفيمابقى من بعض الفاتحة او السورة كلها او بعضها كمافي المنية ......ولعل وجهه انه فيه التحرز عن تكرار الفاتحة في ركعة وتاخيرالواجب عن محله وهوموجب لسجودالسهو.........وهواشدمن لزوم الجمع بين الجهروالاسرارعلى ان كون ذالك الجمع شنيعاغيرمطردلماذكره في آخرشرح المنية ان الامام لوسهافخافت بالفاتحة في الجهرية ثم تذكر بجهر بالسورة ولايعيد(ردالمحتار: ۱/۳۹۳)

(۱۲۶)اوله مذكوره بالالمنځونوڅخه علاوه په نورولمنځونو(يعنى ظهراوعصر)په ټولو ركعتونوكې پرامام اومنفرد دواړواخفاء كول واجب ده ﴿ لقوله ﷺ صلوة النهارعجماء ﴾(يعنى دورځې په لمنځونوكې داسې قرأة نشته كوم چې واوريدل شي )اودورځې له لمنځونوڅخه دظهراوعصرلمنځونه مراددي .نوپه ظهراوعصركې به قرأة سوكه وايي لكه په ورځ كې نفل لمونځ اداء كونكى چې به بالاتفاق قرأة اهسته وايي .

(۱۲۷)يعنى كه لمونځ كونكى يواځې لمونځ كوي نوده ته په جهري لمنځونوكې اختياردى كه يې خوښه وي نوجهردي وكړي اوجهردي دومره وي چې خپل ځان ته يې ورواوروي ولې چې دى دخپل ذات په حق كې امام دى اوكه يې خوښه وي نواخفاء دي وكړي ولې چې له ده سره نورڅوك نشته چې هغه ته دى قرأة ورواوروي .ليكن جهرافضل دى ترڅو دمنفرد لمانځه هيئت دجماعت دلمانځه پرهيئت شي .نومنفردته په جهراواخفاء كې اختياردى لكه په شپه كې نفل اداء كونكې لره دشپې په فرض لمونځونو په قياسولوسره دجهراواخفاء دواړو اختياردى مګرجهرافضل دى ترڅودجماعت پرهيئت شي .

ف:بياپه مقدارجهركې اختلاف دى دعلامه هندواني رحمه الله په نزدجهردادى چې بل يې واوري اواخفاء داده چې په خپله يې واوري اودامام كرخي رحمه الله په نزدجهردادى چې په خپله يې واوري اواخفاء داده چې حروف صحيح وي ،قول اول صحيح دى ولې چې صرف حركت لسان بلاصوت ته قرأت نه ويل كيږي كمافي الحاشية للشيخ عبدالحى اللكنهوى على هامش شرح الوقاية :قال :وادنى الجهراسماع غيره وادنى المخافة اسماع نفسه هو الصحيح (شرح الوقاية )قوله وهوالصحيح اى لتفسيرالجهر والسربماذكرهو الصحيح لان القرأة وان كانت فعل اللسان لكن فعليه الذى هو كلام والكلام بالحروف والحروف كيفية تعرض للصوة لمجدتصحيح الحروف بلاصوت ايماء الى الحروف بالمخارج لاحروف فلاكلام .كذافي فتح القدير (عمدة الرعاية على هامش شرح الوقاية:فصل في القرأة: ۱۳۹/۱ )اوشيخ عبدالحكيم ښاولى كوټي دمسئلې داهميت طرف ته په دي الفاظوسره اشاره كړي ده: وهذه المسئلة من مهمات المسائل وفيهاخطرعظيم خطرعدم صحة صلوة كثيرمن الناس وهم عنهاغافلون ويجب على العلماء اعلام الناس بها ،مګرحضرت مولانامفتى رشيداحمدصاحب نورالله تعالى مرقده رأيه داده چې په قول اول په عمل كولوسره اكثره وهم پيداكيږي اواكثرخلك دهمدي وهم په وجه سره په زوره زوره ويل شروع كړي له كوم څخه چې دنوروپه لمانځه كې خلل پيداكيږي په دي وجه زماپه خيال په دوهم قول عمل كول په كاردي .(احسن الفتاوى ۷۵/۳ )

(۱۲۸)كه چادعشاء په اولنيودووركعتونوكې صرف سورة فاتحه وويله كوم بل سورة يې له هغې سره يوځاى نه كړنوهغه دي په اخيري دووركعتونوكې له الحمدلله سره سورة يوځاى كې اوفاتحه اوسورة دواړه دي په لوړاوازسره ولولې ولې چې په يوه ركعت كې جمع بين الجهروالمخافة شنيع ده لهذافاتحه دي

هم په لوړ اواز سره ولولې ولی چې فاتحه ويل نفل دی او تغير نفل اولی ده ،او که چاپه اولنيو دوو رکعتونو کې الحمد لله پرينبودو نو ددي قضاء دي په اخيري دوو رکعتونو کې نه کوي ولی چې په اخيري دوو رکعتونو کې چې کله يو ځل فاتحه ولولې نو هغه له قضاء شوي فاتحه څخه کفايت نه کوي ولی چې په اخيري دوو رکعتونو کې يو ځل فاتحه لوستل مسنون ده نو په يو ځل لوستلو سره هم دا مسنونه فاتحه اداء کيږي او س د قضاء شوي لپاره دوهم ځل لولې نو دا جائز نه دی ولی چې تکرار فاتحه مشروع نه ده ،هم دا راز فاتحه ويل په دې ډول مشروع ده چې پر هغې دبل سورة وينا مرتبه وي نو که په اخيري دوو رکعتونو کې فاتحه قضاء راوړي نو فاتحه په اولنيو دوو رکعتونو کې پر سورة مرتبه کيږي او دا خلاف مشروع ده .

**ف**:که په لومړي يا دوهم رکعت کې له رکوع څخه وړاندې يا په رکوع کې دننه فاتحه ورته ياد شوه نو بيرته دې راوګرځي او فاتحه دې ولولي بيا دې دوهم ځل سورة ولولي او په اخيرکې دې سجده السهو کړي كمافي العلائية :ولو تذكرها قبل الركوع قرأها واعاد السورة ،وفي الشامية:(قوله قبل الركوع الظاهر انه ليس بقيد حتى لو تذكر في الركوع فكذلك .........قوله واعاد السورة لانها شرعت تابعة للفاتحة (الشاميه مع الدر المختار :1/396)

(۱۲۹)وَفَرْضُ الْقِرَاءَةِ آيَةٌ (۱۳۰)وَسُنَّتُهَا فِي السَّفَرِ الْفَاتِحَةُ وَأَيُّ سُورَةٍ شَاءَ (۱۳۱)وَفِي الْحَضَرِ طِوَالُ الْمُفَصَّلِ لَوْ فَجْرًا أَوْ ظُهْرًا وَأَوْسَاطُهُ لَوْ عَصْرًا أَوْ عِشَاءً وَقِصَارُهُ لَوْ مَغْرِبًا (۱۳۲)وَتُطَالُ أُولَى الْفَجْرِ (۱۳۳)وَلَمْ يَتَعَيَّنْ شَيْءٌ مِنَ الْقُرْآنِ لِصَلَاةٍ

**ترجمه** :او فرض قرأت يو آيت دی ،او سنت قرأة په سفر کې فاتحه ده او کوم سورة چې يې خوښ شي،او په حضر کې طوال مفصل دي که دسهار لمونځ وي يا د ماپښين لمونځ وي او اوساط مفصل دي که دعصر يا عشاء لمونځ وي او قصار مفصل دي که د مغرب لمونځ وي او اوږدوي به صرف د سهار په لمانځه کې اول رکعت ،او متعين نه دی څه له قرآن مجيد څخه دلمانځه لپاره .

**تشريح** :(۱۲۹)يعنی د قرأة هغه ادنی مقدار په کوم سره چې لمونځ جائز دی د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد هغه دی کوم ته چې قرآن ويل کيدای شي که څه هم له يوه آيت څخه لږ وي ،او د امام ابو حنيفه رحمه الله څخه دوهم روايت دا دی چې کامل يو آيت ادنی مقدار قرأة دی آيت که کوچنی وي او که لوی ،د امام ابو حنيفه رحمه الله دليل د باری تعالی دا رشاد ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ اطلاق دی چې په دې کې د آيت يا ما فوق الايت هيڅ تفصيل نشته ،ليکن دا په هغه وخت کې چې ايت لږترلږه پردوه يا دريو کلماتو مشتمل وي لکه (فقتل كيف قدر)يا (ثم نظر)او که پر يوه کلمه مشتمل وي نو جائز نه دی لکه (مدهامتان).

**ف**:د صاحبينو په نزد هغه ادنی مقدار چې په هغه سره لمونځ جائز دی دري کوچني ايتونه دي يا يو لوی ايت دی ولی چې له دې څخه لږ ويونکې ته په عرف کې قاری نه ويل کيږي ،احتياط د صاحبينو پر قول په عمل کولو کې دی او په عباداتو کې احتياط امر حسن دی كمافي فتح القدير:وفي الاسرار وما قالاه احتياط فان قوله لم يلد،ثم نظر،لايتعارف قرآنا وهو قران حقيقة فمن حيث الحقيقة حرم على الحائض والجنب ومن حيث العرف لم تجز الصلوة به احتياطا فيهما(فتح القدير:1/295)مګر مولانا مفتی رشيد احمد صاحب رحمه الله د فرض قرأة په ادنی مقدار په بحث کولو سره د رد المحتار له متعدد و مقاماتو څخه عبارتونه نقل کړي دي ،د کوم چې يې خلاصه ديو سوال په ځواب کې داليکلې ده،ځينو دا تلسو حروفو قول کړی دی،مګر احتياط په دې کې دی چې ديرش حروف وي (احسن

الفتاوی :۷۰/۳)اوپه فتاوی محمودیه کې هم له ایت طویله اودریوایات قصیره سره سره ددیرشو حروفو دویلو کفایت کول هم نقل کړی دی.(محمودیه :۳۰/۷)

(۱۳۰)اوپه سفرکې سنت قرأة دادی چې سوره فاتحه اوکوم سورة چې خوښ شې ودې وایې ولی چې نبی کریم ﷺ په سفرکې دسهارپه لمانځه کې (قل اعوذبرب الفلق)او(قل اعوذبرب الناس )ویلې وو. همدارازسفرخوپه لمانځه کې دومره مؤثردی چې دسفرپه وجه سره دلمانځه یوه حصه ساقطیږي نوپه قرأة کې به په طریقه اولی سره تخفیف وي .مګرداتخفیف هغه وخت دی چې مسافرپه عجلت کې وي که نه نو بیادي دفجراوظهرپه لمانځه کې دسوره بروج په شان سورتونه ولولې اوپه عصراوعشاء کې دي له دي څخه مختصراوپه ماشام کې دي ډیرمختصرسورتونه ولولې.

(۱۳۱)قوله وفی الحضرطوال مفصل ای وسنهافی الحضرطوال مفصل .یعنی دحضر(اقامت )په حالت کې دفجراوظهرپه لمانځه کې طوال مفصل ویل سنت دي یعنی له سوره حجرات څخه ترسوره بروج پورې په سورتونوکې دي کوم سورة وایې اوکه دعصریاعشاء لمونځ وي نواوساط مفصل دي وایې یعنی له سوره بروج څخه بیاترسوره بینه پورې په سورتونوکې دي کوم سورت وایې اوکه دماشام لمونځ وي نوقصارمفصل یعني له سوره بینه څخه بیاتراآخیرقرآن پورې په سورتونوکې دي کوم سورت وایې ولی چې حضرت عمر ﷺ حضرت ابوموسی اشعری ﷺ ته خط لیکلی ووچې په فجراوظهرکې طوال مفصل وایه اوپه عصراوعشاء کې اوساط مفصل وایه اوپه مغرب کې قصارمفصل وایه.

(۱۳۲)دشیخینوپه نزددي صرف دفجرپه اولنی رکعت کې له دوهم رکعت څخه طویل سورت وایې ،امام محمد رحمه الله په ټولولمونځونوکې اولنی رکعت له دوهم رکعت څخه طویل ویل خوښ کړی دی ولی چې نبی کریم ﷺ په ټولو لمونځونو کې اولنی رکعت له دوهم څخه طویل اداء کاوو. دشیخینو دلیل دادی چې په استحقاق قرأة کې دواړه رکعتونه برابردي لهذاپه مقدارقرأة کې به هم برابر وي البته دفجروخت ځرنګه چې دخوب وخت دی په دي کې داول رکعت په طویل اداء کولوکې دافائده وي چې ډیرخلک به دجماعت لمونځ وموندي ،ترکومه چې په حدیث کې داول رکعت دطویل والی ذکردی نوهغه په دثناء اوتعوذپه وجه دی نه دطول قرأة په وجه سره.

ف:علامه شامی رحمه الله دشیخینوقول راجح ګڼلی دی حال داچې نورعلماءکرام فرمایې چې دامام محمد رحمه الله قول راجح اومفتی به دی کماقال الشیخ عبدالحکیم الشاه ولیکوتی الشهید:والصحیح قوله وهوالاوفق بالسنة وعلیه الفتوی وفی معراج الدرایة وعلیه الفتوی ومثله فی المجتبی وفی التاتارخانیة وهوالماخوذللفتوی وفی الخلاصة ان احب الخ واختارابن الهمام فی الفتح قول محمدوهوالصحیح لان ابن الهمام من الفقهاء المجتهدین الاخیارالاعلم بالسنة ومعانیها(هامش الهدایة :۱۰۸/۱ ،کذافی القول الراجح:۸۶/۱)

(۱۳۳)یعنی په کوم لمانځه کې دکوم سورة په دې ډول متعین ویل چې له دي څخه ماسوادکوم بل سورة ویل جائزنه وي صحیح نه دی لاطلاق قوله تعالی ﴿فاقرؤا ماتیسر من القرآن﴾ (له قرآن څخه چې کوم قدراسان وي وایاست یې )اوداطلاق تقاضاداده چې کوم سورة دکوم لمانځه لپاره په فرض ګڼلوسره متعین نه وي .سورة فاتحه که څه هم معینه ده مګرهغه واجب ده فرض نه ده ،نودکوم سورة دکوم لمانځه لپاره متعین کول مکروه

ده ولې چې په دي سره دباقي قرآن ترک لازميږي، همدارازکله چې شارع تيسراکوم شی نه دی متعين کړی نو دبنده له خپل طرف څخه تعين مکروه دی .

**ف**:که کوم څوک مثلاً جمعې دسهارپه لمانځه کې سورة السجدة اوهل اتى فرض ونه ګڼې بلکه دتبرک په نيت سره يې وايې چې نبی کريم ﷺ دجمعې په ورځ دسهارپه لمانځه کې ويلې دي نودامکروه نه بلکه مندوب دی په دي شرط چې کله کله کوم بل سورة هم وايې ترڅوچې جهلاء دا ونه فهموي چې له دي دوڅخه علاوه کوم بل سورة جائزنه دی کمافی شرح التنوير:(ويكره التعيين )كالسجدة وهل اتى لفجركل جمعة بل يندب قرأتهمااحيانا.(ردالمحتار: ۱/۲۰۲)

(۱۳۴ )وَلَايَقرَأُ الْمُؤتَمُّ وَيَنصِتُ وَإِن قَرَأَ آيَةَ التَّرغِيبِ وَالتَّرهِيبِ(۱۳۵ )اوخَطَبَ اوصلى على النبي صلى الله عليه وسلم(۱۳۶ )وَالنَّائي كَالقَرِيبِ

**ترجمه** :اوقرأة دي نه کوي مقتدی بلکه اوري دي اوخاموش دي وي که څه هم امام ايت ترغيب ياترهيب ولولې ،ياخطبه وايې ياپرنبی کريم ﷺ درودوايې ،اوليري ناست دنژدي په شان دی .

**تشريح** :(۱۳۴)يعنی داحنافوپه نزدبه مقتدی دامام شاته قرأة نه وايې خواه که سرّی لمونځ وي اوکه جهری بلکه دامام قرأة دي اوري اوخاموش دي وي که څه هم امام دترغيب ايتونه (هغه آيتونه په کوموکې چې دجنت بيان دی)يادترهيب ايتونه (هغه ايتونه په کوموکې چې دجهنم بيان دی )ووايې لقوله تعالى ﴿وإذاقرئ القرآن فاستمعوا له وأنصتوا﴾(يعنی کله قرآن ويل کيږي نوتاسې غوږورته ونيسئ اوپټه خوله اوسئ) داکثراهل تفسيررأيه داده چې داخطاب مقتدی ته دی لهذامقتدی به په امام پسې قرأة نه کوي .

**ف**:دامام محمد رحمه الله طرف ته چې کوم داقول منسوب دی چې په سرّی لمانځه کې فاتحه لوستل مستحسن ده دا ضعيف دی کمافی الدرالمختار:والمؤتم لايقرامطلقاولاالفاتحة فی السرية اتفاقا،ومانسب لمحمدضعيف کمابسطه الکمال،قال ابن عابدين:(قوله کمابسطه الکمال)حاصله ان محمداقال فی کتابه الآثارلانرى القراة خلف الامام فی شیءمن الصلوات يجهرفيه اويسرودعوى الاحتياط ممنوعة بل الاحتياط ترک القراة لانه العمل باقوى الدليلين وقدروى الفسادبالقراءة عن عدة من الصحابة فالقواهماالمنع .(الدرالمختارمع الشامية: ۱/۲۰۲)

**ف**:دامام شافعی رحمه الله په نزدپرمقتدی باندي دامام ترشاسورة فاتحه ويل واجب دی ﴿لقوله ﷺ لاصلوة الابفاتحة الکتاب﴾ (له سورة فاتحه څخه بغيرلمونځ نه کيږي )،زموږدليل مذکوره بالاآيت شريف دی اودنبی کريم ﷺ ارشاددی﴿من کان له امام فقراءة الامام له قراءة﴾ (يعنی کوم لمونځ کونکی لره چې امام وي نودامام قرأة دده قرأة دی )اوله اتيا(۸۰)اکبارصحابه کرامو ﷺ څخه مروی ده چې هغوئ له قرأة خلف الامام څخه منع فرمايله ،لهذادقرآن داستماع فرضيت په نص ثابته شوه اوقرأة کول ،دجنت سوال کول ،ياله جهنم څخه پناه غوښتل دي استماع لره مخل دی .

(۱۳۵)قوله اوخطب ،پردي عبارت داسوال کيدای شي چې ظاهراخطب معطوف دی پرقرأباندي که واقعی خطب پرقرأمعطوف وي نوپه دي وخت کې دعبارت معنی داده چې که څه هم امام خطبه وايې يا درودوايې نوهم به مقتدی خاموش اوسي حال داچې امام خودلمانځه په منځ کې خطبه نه وايې ؟

خواب:خطب واقعتاپرقرأمعطوف دی مګردخطب فاعل امام نه دی بلکه خطيب دی ای خطب الخطيب اوصلی علی

النبى ﷺ ،نو داله قبيله دعطف الجمله على الجمله دى يعني كه خطيب په خطبه كې دترغيب ياترهيب آيت ولوستى يايې پرنبى كريم ﷺ درودشريف ووايونوهم دخاموش اوسيدلوحكم دى ولى چې دجنت سوال وغيره استماع لره مخل دى .

(۱۳۶)له امام اوله خطيب څخه ليري اونژدي كسان دواړه په حكم كې برابردي يعني لكه څرنګه چې قريب لره دقرأة دنه كولو اودخاموش اوسيدلوحكم دى همداحكم بعيدلره هم دى ولى چې بعيدكس هم په قرأة اوريدلواوخاموش پاتې كيدلوماموردى نودى كه له قرأة اوريدلوڅخه عاجزدى نوله خاموش پاتې كيدلوڅخه خوعاجزنه دى.

**اللطيفة** :سرق اعرابى غطاء السرج ثم دخل المسجد يصلى، فقرأ الامام (هل اتاك حديث الغاشية) فقال ياالفقيه لاتدخل فى الفضول، فلماقرأ (وجوه يومئذ خاشعة) قال، خذوا غاشيتكم ولا يخشع وجهى لابارك الله لكم فيها ثم رماها من يده وخرج (المستطرف)

## باب الإمامة

داباب دامامة په بيان كې دى

مصنف رحمه الله په ماقبل كې دامام اومقتدى څه صفات ذكركړل په همدې مناسبت سره اوس دلته د مشروعيت امامت صفت بيانوي چې پركوم صفت داله مشروعاتوڅخه دى بيان يې دابيان كړى دى چې ترټولو ډيرمستحق دامامت څوك دى .

**ف**:امامت پردوه قسمه دى ،كبرى ،صغرى،امامت كبرى ،استحقاق تصرف عام على الانام (يعنې پرمخلوق دعام تصرف مستحق والى)ته ويل كيږي ،داسې عام متصرف ته دفقه په اصطلاح كې امير، يا اميرالمؤمنين،خليفة المسلمين ياامام اعظم ويل كيږي.امامت كبرى دشريعت له انتهائي اهمو واجبانو څخه دى همدا وجه ده چې صحابه كرامو ﷺ دنبى كريم ﷺ له وفات څخه وروسته له دفن څخه وړاندې دنبى كريم ﷺ نائب مقرركړ،دداسې اميراعظم لپاره شرط دادى چې هغه به مسلمان،ازاد، عاقل، بالغ،نارينه،اوپرعموعمي تصرف قادروي.امامت صغرى،ربط صلوة المقتدى بصلوة الامام (دمقتدى خپل لمانځه لره دامام له لمانځه سره تړلو)ته ويل كيږي .دامامت صغرى لپاره هم څوشرطونه دي هغه داچې امام به بالغ وي ،عاقل وي ،نارينه به وي ،بقدرضرورت به يې دقرآن سورتونه يادوي ،اوروغ به وي له اوداسه سره منافي عذربه نه لري .

(۱۳۷)الْجَمَاعَةُ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ (۱۳۸)وَالْأَعْلَمُ أَحَقُّ بِالْإِمَامَةِ (۱۳۹)ثُمَّ الْأَقْرَأُ (۱۴۰)ثُمَّ الْأَوْرَعُ (۱۴۱)ثُمَّ الْأَسَنُّ (۱۴۲)وَكُرِهَ إمَامَةُ الْعَبْدِ وَالْأَعْرَابِيِّ (۱۴۳)وَالْفَاسِقِ وَالْمُبْتَدِعِ وَالْأَعْمَى وَوَلَدِ الزِّنَا (۱۴۴)وَتَطْوِيلُ الصَّلَاةِ (۱۴۵)وَجَمَاعَةُ النِّسَاءِ (۱۴۶)فَإِنْ فَعَلْنَ يَقِفُ الْإِمَامُ وَسَطَهُنَّ كَالْعُرَاةِ (۱۴۷)وَيَقِفُ الْوَاحِدُ عَنْ يَمِينِهِ (۱۴۸)وَالِاثْنَانِ خَلْفَهُ

**ترجمه** :جماعت سنت مؤكده ده ،ترټولو ډيرعالم حقدارد امامت دى ،بياترټولو ډيرقارى ،بياترټولو ډير پرهيزګار، بيا ترټولو مشر، اومكروه ده دغلام امامت اودكوچى اودفاسق اودمبتدع اودړانده اودولد زنا،او (مكروه ده )لمونځ اوږدول،اودښځو جماعت ،بيا كه هغوئ جماعت كاوونودريږي دي امام ددوئ په منځ كې دلڅوپه شان ،اودريږي دي يومقتدى دامام ښى اړخ ته ،اودوه دامام شاته .

**تشریح** :جماعت په لغت کې ټولی ته ویل کیږي او په اصطلاح د شریعت کې د مسلمان کس له بل سره لمونځ کولو ته ویل کیږي که څه هم هغه عاقل هلک وي .

(۱۳۷)په جماعت سره لمونځ (مراد فرض لمونځ دی یا هغه کوم چې د فرضو په حکم کې دی لکه ترواېح وغیره )ادا، کول سنت موکده دی ولی چې د نبی کریم ﷺ ارشاد دی ﴿الجماعة من سنن الهدی لایتخلف عنها الامنافق﴾(جماعت له سنن هدی څخه دی له دې څخه شاته نه پاتې کیږي مګر منافق).

**ف**:دامام احمد او داؤد ظاهری په نزد جماعت فرض عین دی ﴿لقوله ﷺ لا صلاة لجار المسجد إلا في المسجد ﴾ (د مسجد د همسایه ګانو لمونځ نه کیږي مګر په مسجد کې )،احناف ځواب ورکوي چې په حدیث شریف کې د نفس صلوة نفی دی بلکه د صلوة کامله نفی ده ولی چې نبی کریم ﷺ فرمایې په جماعت سره لمونځ ادا، کول له تنهاء لمانځه اداء کولو څخه پنځه ویشت درجې افضل دی .له دې روایت څخه د تنهاء لمانځه د ادا، کولو جواز ثابتیږي نو که جماعت فرض عین وای نو د تنهاء لمونځ کونکی لمونځ به جائزنه وای.

**ف**:سنت پر دوه قسمه دي .سنت هُدی ،سنت زائده ،سنت هدی هغه دی چې پر هغه نبی کریم ﷺ د عبادت په ډول له کله کله ترک سره مواظبت فرمایلی وي او سنت زائده هغه دی کوم چې نبی کریم ﷺ بطریق عادت کړی وي لکه د نبی کریم ﷺ عادات په قیام ،قعود او لباس وغیره کې ،اول قسم پریښودل مکروه اضلالت دی او دوهم قسم په پریښودلو کې څه حرج نشته .

(۱۳۸)یعنی د امامت ترټولو ډیر مستحق هغه کس دی کوم چې اعلم بالسنة وي یعنی دفقه او شریعت علم لرونکی وي په دې شرط چې په دومره قرأة قدرت لري چې په هغه سره لمونځ جائزوي . دا د طرفینو مسلک دی او د امام ابویوسف رحمه الله په نزد د امامت ډیر مستحق هغه دی کوم چې ترټولو ښه قاری وي ولی چې قرأة د لمانځه یو داسې رکن دی چې له هغه څخه بغیر چاره نشته حال دا چې د علم ضرورت د کوم عارض پروخت وي هروخت نه وي .د طرفینو دلیل دا دی چې احتیاج الی القرأة صرف دیوه رکن لپاره وي او احتیاج الی العلم د ټولو ارکانو لپاره دی .همدارنګه نبی کریم ﷺ پریوه موقع وفرمایل «مروا ابابکر فلیصل بالناس»(چې ابوبکر رضی الله عنه ته امروکړئ چې هغه خلکوته لمونځ ورکړي )حال دا چې په صحابه کرامو رضی الله عنهم کې له ابوبکر رضی الله عنه څخه لوی قاریان موجود وو لکه ابی بن کعب رضی الله عنه بیا هم د لمانځه د ورکولو حکم حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته وکړل شو نو دا دلیل دی چې اعلم له اقرأ څخه مقدم دی .

**ف**:د طرفینو قول راجح دی کمافي شرح التنویر:(والاحق بالامامة )تقدیما بل نصبامجمع الانهر(الاعلم باحکام الصلوة )فقط صحة وفسادا بشرط اجتنابه للفواحش الظاهرة وحفظه قدر فرض وقیل واجب وقیل سنة .قال ابن عابدین (قوله باحکام الصلوة فقط)ای وان کان غیر متبحر فی بقیة العلوم وهو اولی من المتبحر (ردالمحتار: ۱/ ۴۲۱،کذا فی الهندیة: ۱/ ۸۳)

(۱۳۹)که با جماعت لمونځ کونکې ټول په علم کې سره برابروي نو بیا کوم چې ښه قاری وي هغه اولی دی ﴿لقوله ﷺ و الیؤم القوم اقراهم لکتاب الله فان کانوا سواء فاعلمهم بالسنة﴾ (یعنی د قوم امامت دې هغه وکړي کوم چې ترټولو ښه قاري وي که په قرأة کې ټول سره برابروي نو بیا دې هغه لمونځ ورکړي کوم چې ترټولو ډیر عالم بالسنة وي ).سوال :له دې روایت څخه خو دا معلومیږي چې قاری ،له عالم څخه مقدم دی ؟ځواب :اصلا په

هغه زمانه کې چې به څوک ډیرقاري وو هغه به عالم بالسنة هم وو په دي وجه په حدیث کې اقرأ له عالم څخه مقدم کړل شو حال دا چې زموږ په زمانه کې داسې نه دی په دي وجه به زمانه کې اعلم له اقرأ څخه مقدم وي.

(۱۴۰)او که په قرأة کې ټول سره برابروي نو بیا تر ټولو ډیر پرهیزګار اولی دی ولی چې په حدیث شریف کې له اعلم او اقرأ څخه وروسته هجرة کونکی ډیر مستحق ګرځول شوی دی او س علماؤ مهاجرعن المعاصی (یعني متقی) د مهاجرعن الوطن قائم مقام ګرځولی دی، همدا راز نبی کریم ﷺ فرمایلي ﴿ان سرکم ان یقبل الله صلوتکم فلیؤ کم خیار کم فانهم وفدکم فیما بینکم وبین ربکم﴾ (که ستاسې دا خبره خوښوئ چې الله تعالی ستاسې لمونځ قبول کړي نو په تاسې کې بهترامام جوړ کړی په دي وجه چې هغه ستاسې او ستاسې د پروردګار ترمنځ وکیل او نمائنده دي).

(۱۴۱)که په تقوی او پرهیزګاري کې ټول سره برابروي نو بیا کوم چې په عمر کې تر ټولو لوی دی هغه د امامت ډیر حقدار دی ولی چې نبی کریم ﷺ د ابی ملیکه دوو زامنو ته وفرمایل ﴿ولیؤمکما اکبرکما سنا﴾ (یعني په تاسې دواړو کې دلوی امامت وکړي).

**ف:** که کوم کس د کوم قوم امامت کوي او حال دا چې قوم له ده څخه خوشحاله نه دی او فساد هم په امام کې وي نو امام لره د دوئ امامت کول مکروه تحریمي دی ﴿لقوله ﷺ لایقبل الله صلوة من تقدم قوما وهم له کارهون﴾ (الله تعالی د داسې کس لمونځ نه قبلوي کوم چې د قوم امامت کوي حال دا چې قوم د ده پر امامت راضی نه وي). البته دا بایدیاد وساتل شي چې د دیندارو او اکثرو خلکو کراهت او ناراضی معتبره ده دیوه یا دوه نیا دارانو ناراضی او کراهت معتبرنه دی، بلکه که په امام کې دننه کومه شرعی خرابي نه وي. خلک د غلطو اغراضو په وجه سره له دي څخه ناخوښه وي او دی له امامت څخه علیحده کول غواړي نو هغه خلک ګناهګار او سخت مجرم دي کمالی بذل المجهود: وقدقیدذلک (ای الکراهة) جماعة من اهل العلم بالکراهة الدینیة بسبب شرعی، فاما الکراهة لغیرالدین فلاعبرة بها، وقیدوه ایضا بان یکون الکارهون اکثر المأمومین، ولااعتبار بکراهة الواحد ولاالاثنین والثلاثة اذا کان المؤتمون جمعا کثیرا (بذل المجهود شرح سنن ابی داؤد، باب الرجل یؤم القوم وهم له کارهون: ۱/۳۳۱)

(۱۴۲)یعني د غلام امامت مکروه تنزیهی دی ولی چې د عدم فرصت په وجه پر ده د جهل غلبه وي. همدا شان د کوچی امامت مکروه دی ولی چې په دوئ کې جهل غالب وي لقوله تعالی ﴿واجدران لایعلموا حدود ما انزل الله علی رسوله﴾ (او دوئ باید همداسې وي چې دوئ ته د هغو احکامو علم نه وي کوم چې الله تعالی پر خپل رسول ﷺ نازل فرمایلي دي).

**لطیفه:** حکی ان اعرابیا اقتدی بامام فی صلوة المغرب وقرا لامام (الاعراب اشد کفرا ونفاقا الایة) فلما سمع الاعرابی انصرف واخذ عصا وضرب به علی کتف الامام ثم اقتدی ثانیا وقرا الامام (ومن الاعراب من یؤمن بالله والیوم الاخر الایة) فقال الاعرابی وهو فی الصلوة قدنفعک العصا.

**لطیفه:** صلی اعرابی خلف الامام فقرا الامام (الم نهلک الاولین) وکان فی الصف الاول فتاخر الی الصف الآخر فقرأ (ثم نتبعهم الآخرین) فتاخر فقرا (کذالک نفعل بالمجرمین) وکان اسم البدوی مجرما فترک الصلوة وخرج هاربا وهو یقول والله ما المطلوب غیری، فوجده بعض الاعراب فقال له ما لک یا مجرم؟ فقال ان الامام اهلک الاولین والآخرین واراد ان یهلکنی فی الجملة والله لارایته بعد الیوم (المستطرف)

(۱۴۳)قوله والفاسق والمبتدع ای وکره امامة الفاسق والاعرابی ،يعنی دفاسق امامت مکروه دی ولی چې هغه ددين په معامله کې متهم دی او خلک له ده څخه نفرت کوي ،دمبتدع امامت مکروه دی يعنی هغه کس کوم چې په دين کې داسې نوي خبري ايجادکړي چې دهغوئ کوم اصل په شريعت کې موجودنه وي يا په نويوپيداشويو عمل کوي دداسې کس په نسبت دمتبع شريعت کس په اقتداء کې دلمانځه په اداء کولوکې ديرثواب دی ،دابايدپه يادوساتل شي چې له بدعتی څخه مراد داسې بدعتی دی چې دهغه بدعت ترکفره نه وي رسيدلی اوکه دده بدعت ترکفره رسيدلی وي نودهغه اقتداء جائزه نه ده ،دړانده امامت مکروه دی ولی چې هغه خپل ځان له نجاست څخه نه شي ساتلی ليکن که څوک دده په شان عالم فاضل نه وي نو بيادهغه امامت مکروه نه دی ولی چې نبی کريم ﷺ حضرت عبدالله ابن مکتوم په مدينه منوره کې خپل خليفه جوړکړی وو.اودولدزناامامت مکروه دی ولی چې دده پلارنه وي لهذاپرده هم دجهل غلبه وي ،اودټولومشترکه وجه داده چې ددوئ له امامت څخه خلک نفرت کوي اودجماعت لمونځ پريږدي په دې وجه مکروه ده.

ف:هوکه داکسان په خپله وړاندي شول نوله يواځې لمونځ اداء کولوڅخه په دوئ پسې لمونځ اداء کول بهتردی ﴿لقوله ﷺ صلواخلف کل بروفاجر﴾ (يعنی په هرنيک اوبدکس پسې لمونځ اداء کوئ )البته ددوئ دافعل مکروه دی﴿لقوله ﷺ من ام قوماوهم له کارهون فلاصلوة له﴾ (الله تعالی دداسې کس لمونځ نه قبلوي کوم چې دقوم امامت کوي په داسې حال کې چې قوم دهغه په امامت راضی نه وي ).

ف:اعمی که دطهارت په مسائلوکې محتاط وي اوافضل وي نودده امامت مکروه نه دی ،فاسق اومبتدع که عالم اوقاری وي نودده امامت بياهم مکروه دی،دعبد ،اعرابی اوولدزنامتعلق دوه قوله دي ،په يوه قول کې کراهت ختميږي ،اوپه دوهم قول باقی پاتيږي ،اول قول قوی معلوميږي ولی چې دکراهت علت غلبه جهل اوتنفيرجماعت دی کوم چې دعلم اوتقوی په وجه سره ختميږي .(فتاوی محموديه : ۲۵۲/۶)

ف:که کوم کس ترډيره زمانه پوري په مسجدکې امام پاتې شوی وي اوس هغه اقرارکوي چې زه ددې مسجددامامت په زمانه کې کافروم نوکه دده پرکفردده له اقرارڅخه ماسوابله کومه قرينه نه وي نودی به دامامت له زمانې څخه مرتدنه ګرځول کيږي بلکه ده چې په کوم وخت دکفراقرارکوي له هغه وخت څخه مرتدګرځي لهذاپه تيره شوي زمانه کې دده په اقتداء کې اداء شوي لمونځونه صحيح دي کمافی الشامية:(قوله لان الصلوة دليل الاسلام )ای دليل علی انه کان مسلماوانه کذب بقوله انه صلی بهم وهو کافروکان ذالک الکلام منه ردة فيجبر علی الاسلام (ردالمحتار: ۵۵۳/۱)

(۱۴۴)قوله وتطويل الصلوة ای وکره تطويل الصلوة ،يعنی دامام خلکوته اوږدلمونځ ورکول مکروه دی ﴿لقوله ﷺ اذاصلی احدکم بالناس فليخفف فان فيهم الضعيف والسقيم والکبيرواذاصلی لنفسه فليطول ماشاء﴾ (يعنی په تاسې کې چې څوک خلکوته لمونځ ورکوي نوسپک لمونځ دي ورکوي ولی چې په دوئ کې کمزوره اوناروغه اوسپين ږيري وي اوکه چې خپل لمونځ اداء کوي نوڅومره چې يې خوښه وي طويل دي کړي )البته صلوة کسوف له مذکوره بالاحکم له کراهت څخه مستثنی دی ولی چې په صلوة کسوف کې اوږدقرآة مطلوب دی حتی تنجلی

الشمس ،مګرله اوږده لمانځه څخه مراددادی چې قرأة له مقدارمسنون څخه زيات وويل شي په مسنون مقدارسره دقرأة ويلوپه صورت کي لمانځه ته طويل نه ويل کيږي .

ف: که امام راتلونکی کس وپيژاندبيايې دده لپاره قرأة يارکوع اوږده کړه نودامکروه تحريمي دی اوکه يې راتلونکی کس ونه پيژاندنوبياکراهت نشته قال شارح التنوير: وكره تحريماًاطالة ركوع اوقرأة لادراک الجائي اى ان عرفه والافلاباس به ولواراد التقرب الى الله تعالى لم يكره اتفاقاً (ردالمحتار: ١/٦٦٢)

(۱۴۵)قوله وجماعة النساء اى وكره تحريماًجماعة النساء ،يعني ښځولره يواځې په جماعت سره لمونځ اداء کول مکروه ده خواه که فرض لمونځ وي اوکه نفل﴿لقوله ﷺ صَلاةُ الْمَرأةِ فِي بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِن صَلاتِهَا فِي حُجرَتِهَا وصَلاتُهَا فِي مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِن صَلاتِهَا فِي بَيْتِهَا ﴾ (يعني نبی کريم ﷺ وفرمايل چې دښځې لمونځ بهتردی په خپله کوټه کې ترلمونځ ددې په عامه کوټه کې اولمونځ ددې بهتردی دکوټې په خوندی ځای کې ترلمونځ ددې په صحن دکوټې کې)،همداراز دښځوجماعت دمکروه له ارتکاب څخه خالي نه وي په دې وجه چې ددوئ امام به له اقتداء کونکيوښځوڅخه ياوړاندې دريږي يابه ددوئ په منځ کې دريږي په اولنی صورت کې کشف عورت ديردی اوپه دوهم صورت کې دامام دخپل ځای پرېښودل لازميږي په دې وجه داهم مکروه دی .اوجماعت سنت دی اوقاعده ده چې له ارتکاب مکروه څخه ترک سنت اولی دی.

(۱۴۶)اوکه دوئ داسې وکړل (يعني که ښځوپه جماعت سره لمونځ اداکوی)نودلتوخلګوپه شان به ددوئ امام هم ددوئ په منځ کې دريږي ولی چې دحضرت عائشه ﵂ عمل همداشان منقول دی شايدچې هغې په ابتداء اسلام کې کړی وي، همدرازپه دې کې سترهم زيات دی .

(۱۴۷)يعني که له امام سره يومقتدی وي نوهغه دې خپل ښی اړخ ته ودروي﴿لحديث ابن عباس ﵄ قال قام ﷺ الى شن معلق فتوضأ واتسح فقمت وتوضات ووقفت على يساره واخذباذني وادارني خلفه حتى اقامني عن يمينه﴾(يعني نبی کريم ﷺ له يو راځوړندمشکيزې څخه اوبه راواخيستې اولمونځ يې شروع کړنوزه هم راپاڅيدم اواودس مې وکړبزه ده نبی کريم ﷺ په کيڼ اړخ کې ودريدم نونبی کريم ﷺ زماغوږونيوبزه يې دشاله طرفه راوګرځولم ترڅوچې زه يې خپل ښی اړخ ته ودرولم).

ف: اوکه يومقتدی وواودامام کيڼ اړخ ياشاته ودريدونودده لمونځ کيږي ليکن ګناهګاردی ،اومقتدی دې په ښی اړخ کې داسې ودريږي چې دده پښې دامام له پښوڅخه وړاندې نه وي ولی چې اعتبارد پښو اينښودلوځای ته دی نوکه کوم مقتدی اوږدقامت والاوي دکوم سجده چې له امام څخه وړاندې وي نوداضره نه ده اوکه دمقتدی پښې له امام څخه وړاندې وي نودمقتدی لمونځ نه صحيح کيږي كمافى شرح التنوير: ولاعبرة بالرأس بل بالقدم ،قال ابن عابدين :(قوله بل بالقدم)فلوحاذاه بالقدم ووقع سجوده مقدماعليه لكون المقتدى اطول من امامه لايضر(ردالمحتار: ١/٦١٩)

(۱۴۸)قوله والاثنان خلفه اى ويقف الاثنان خلف الامام ،يعني که له امام سره دوه مقتديان وي نودطرفينو په نزدبه امام له دوئ دواړوڅخه وړاندې دريږي ولی چې نبی کريم ﷺ حضرت انس ﵁ اويتيم ﵁ ته لمونځ ورکړنونبی کريم ﷺ له دوئ دواړوڅخه وړاندې ودريدی .امام ابويوسف ﵀ فرمايي چې که مقتديان دوه وونوامام دې ددوئ په منځ کې دريږي ولی چې حضرت عبدالله ابن مسعود ﵁ حضرت

علقمه اوحضرت اسودرضی الله تعالی عنهماته لمونځ ورکړنوددوئ په منځ کښې ودريدو. مګرامام ابويوسف رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه داعمل په تنګی مقام باندې محمول دی.

**ف**:که په پيل کښې له امام سره يومقتدی وي وروسته څه نورخلګ هم راغلل نوهغوئ دي دامام شاته صف جوړکړي اواولنی مقتدی دي هم شاته ولاړشي اوله نورومقتديانوسره دي په صف کښې شامل شي. اوکه اولنی مقتدی په خپله نه ولاړی نووروسته راتلونکی کس دي دی په ارام سره شاته کش کړي په دي شرط چې دفساداوجنګ خطره نه وي اوکه وروسته راتلونکی کس راغی اودامام کيڼ اړخ ته ودريدو، نوامام دي دواړوته دشاته کيدلواشاره وکړي. داټول تفصيل هغه وخت دی چې امام په قعده اخيره کښې نه وي که امام په اخيره قعده کښې وي نووروسته راتلونکی کس به دامام کيڼ اړخ ته دريږي، نه به اولنی مقتدی شاته ځي اونه به امام وړاندې ځي کمافی الشامية: والذی يظهرانه ينبغی للمقتدی التأخراذاجاء الثالث فان تاخر (فيها) والاجذبه الثالث ان لم يخش الفسادصلوته فان اقتدی عن يسار الامام يشير اليهمابالتاخروهواولی من تقدمه لانه متبوع ولان الاصطفاف خلف الامام من فعل المقتدين لاالامام فالاولی ثباته فی مکانه وتأخرالمقتدی ......والظاهرايضاان هذااذالم يکن فی القعدة الاخيرة والااقتدی الثالث عن يسارالامام ولاتقدم ولاتاخر (ردالمحتار: ١/٣٢٠)

(١٣٩) وَيَصُفُّ الرِّجَالُ ثُمَّ الصِّبْيَانُ ثُمَّ الخَنَاثَى ثُمَّ النِّسَاءُ

**ترجمه**: اوصف دي جوړکړي دنارينه وبيادهلکانوبياخناثی وبيادښځو.

**تشريح**: (١۴٩) يعنی دامام شاته دي ترټولووړاندې نارينه ودريږي بيادي ددوئ شاته هلکان ودريږي بيادي احتياطاله ښځوڅخه وړاندې خنثی ودريږي بيادي په دوئ پسې ښځې ودريږي ﴿لقوله ﷺ ليلينی منکم أولوالأحلام﴾ (يعنی قريب دي وي ماته له تاسې څخه بالغ کسان). اوپرښځودهلکانوتقديم دنبی کريم ﷺ له فعل څخه ثابت دی ولی چې په ماقبل کښې په ذکرشوی دحضرت انس رضي الله عنه په روايت کښې داهم شته چې نبی کريم ﷺ يوه سپين ساری ښځه ديتيم نومی نابالغ هلک شاته درولې وه، همدارازحضرت ابومالک اشعری رضي الله عنه خپل قوم ته وويل چې تاسې خپله هم جمع شئ اوخپلې ښځې اوهلکان هم راجمع کړئ ترڅوزه تاسې ته دنبی کريم ﷺ لمونځ دروښيم نوهغوئ خپله هم جمع شول اوخپل زامن اوښځې يې هم راجمع کړل بيايې اودس وکړاودوئ ته يې وروښودل چې نبی کريم ﷺ څرنګه اودس کاوو، بياابومالک وړاندې شوبيايې دنارينه وصف جوړکړاوهلکان يې دهغوئ شاته ودرول اودښځوصف يې له هلکانوڅخه وروسته جوړکړ، اوفقهاؤدخنثی دهلکانواوښځوپه منځ کښې ددرولوحکم کړی دی ولی چې خنثی ذوجهتين دی.

**ف**:له خنثی څخه مراددلته خنثی مشکل مراددی يعنی په کوم کښې چې مردانه بزنانه علامت برابروي اوکه په خنثی (نرښځی) کښې مردانه علامې ديري وي نوهغه په صف اول کښې دريدلی شي، اوکه زنانه علامې ديري وي نوهغه به دښځوپه صف کښې دريږي، هلک که يواځې وي نوهغه دي دنارينه وپه صف کښې ودرول شي کمافی البحر: ويقتضی ان الصبی الواحدلايکون منفرداعن صف الرجال بل يدخل فی صفهم (البحر الرائق: ١/٣۵٣)

**ف**:نن صباهلکان بايدپه منتشرډول سره دنارينه وپه صفوکښې ودرول شي ولی مشاهده داده چې هلکان چې کله دوه ياله دووڅخه زائدچيرته جمع شي نودشوراوشغف په وجه سره خپل لمونځونه باطلوي اوديروخت

ددوئ دفسادپه وجه سره دنارينه ولمانځه ته هم نقصان رسيږي قال الرحمتي :وبمايتعين في زماننا ادخال الصبيان في صفوف الرجال لان المعهود منهم اذا اجتمع صبيان فاكثر تبطل صلوة بعضهم ببعض وربماتعدى ضررهم الى افساد صلوة الرجال سندي (التحرير المختار على رد المحتار: ١/٧٣)

(١٥٠) وَإِنْ حَاذَتْهُ مُشْتَهَاةٌ فِي صَلَاةٍ مُطْلَقَةٍ مُشْتَرَكَةٍ تَحْرِيمَةً وَأَدَاءً فِي مَكَانٍ مُتَّحِدٍ بِلَا حَائِلٍ فَسَدَتْ صَلَاتُهُ إِنْ نَوَى إِمَامَتَهَا (١٥١) وَلَا يَحْضُرْنَ الْجَمَاعَاتِ

**ترجمه** :اوكه له نارينه سره برابره شوه مشتهاته ښځه په مطلق لمانځه كې كوم چې مشترک وي دتحريمې اواداء له رويه په يوه مكان كې بغيرله كومې پردې نوفاسديږي دنارينه لمونځ كه نيت كړى وو امام دښځې دامامت ،اونه دي حاضريږي ښځې جماعاتوته .

**تشريح** :(١٥٠)قوله وان حاذته اى ان حاذت المرأة المصلى ،يعنى كه كومه ښځه له كوم نارينه سره محاذى(يعنى له نارينه سره څنګ پرڅنګ ودريده )شوه په دې شرط چې مشتهاة وي يعنى دجماع قابله وي اولمونځ هم كامل وي يعنى ذات الركوع والسجودوي دجنازې لمونځ نه وي اوددواړولمونځ هم مشترک وي يعنى دواړوخپلې تحريمې دامام پرتحريمه بناء كړي وي اوددواړومكان هم يو وي په منځ كې څه حائل(پرده )نه وي نوپه داسې صورت كې خلاف القياس دنارينه لمونځ فاسديږي دښځې نه فاسديږي ولې چې دحضرت ابن مسعود ﷺ حديث دى ﴿ ان رسول الله قال أَخِّرُوهُنَّ من حَيْثُ أَخَّرَهُنَّ اللهُ﴾(ښځې مؤخري كړئ چيرته چې الله ﷻ دوئ موخري كړي وي )په دې حديث كې نارينه وته حكم وركړل شوى دى چې هغوئ دې ښځې په لمانځه كې شاته كوي نوكله چې ښځه له ده سره محاذى شوه نوګواكې نارينه خپل فرض مقام ترک كړولې چې په داسې لمانځه چې په هغه كې دواړه سره شريک وي دښځې مؤخركول پرنارينه فرض دى اوچاچې فرض پرېښودى دهغه لمونځ فاسديږي نه دهغه بل په دې وجه زموږپه نزددنارينه لمونځ فاسديږي دښځې لمونځ نه فاسديږي .

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزددنرلمونځ نه فاسديږي دقياس تقاضاهم همداده چې دنرلمونځ هم فاسدنه شي .امام شافعي رحمه الله دنرلمونځ دښځې پرلمانځه قياس كړى دى ،ليكن احنافو استحساناًدمذكوره بالاحديث په وجه سره قياس ترک كړى دى .

ف:كه نرښځې ته دليري كيدلواشاره وكړه مگرهغه ليري نه شوه ياامام دهغې دامامت نيت ونه كړنوبيادښځې لمونځ فاسديږي نه دنرلمونځ ،همداشان كه ښځه په محاذات كې ودريده مگرديوه ركن په مقدارېې دوام ونه كړبلكه زرليري شوه نوهم دنرلمونځ نه فاسديږي كمافى الدرالمختار:(والا)ينوبها(فسدت صلوتها)كمالواشاراليهابالتاخيرفلم تتاخرلتركهالفرض المقام فتح وشرطواكونهاعاقلة وكونهمافى مكان واحدفى ركن كامل (الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ١/٤٢٦)

ف:همداشان كه ددواړوپه منځ كې كوم حائل وي په دې شرط چې هغه په اوږدوالى كې يوذراع اوپه پنډوالى كې دګوتې په اندازه وي نوهم دنرلمونځ نه فاسديږي ،همداشان كه ددواړوپه منځ كې دومره فاصله وي چې په هغه كې بل لمونځ كونكى دريداى شي نوهم دنرلمونځ نه فاسديږي كمافى شرح التنوير:(ولاحائل بينهما)اقله قدر ذراع فى غلظ اصبع او فرجة تسع رجلا (ردالمحتار: ١/٤٢٣)

ف: په انفرادي لمانځه کې که ښځه له نرسره متصله ودريدله نولمونځ کيږي مگرمتصل دريدل مکروه دي كمافي الدرالمختار: فمحاذاة المصلية لمصل ليس في صلوتها مكروهة لامفسد (ردالمحتار: ۱/۵۳۷)

(۱۵۱)يعنی دځوانو ښځوپه جماعتونوکې حاضريدل مکروه تحريمي ده ولی چې ددوئ په حاضري کې دفتنې انديښنه ده،البته دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدبوډ ی ښځې دفجرمغرب اوعشاء دجماعت لپاره وتلی شي اوصاحبينوپه نزدبوډی ښځې هروخت وتلی شي ،دصاحبينودليل دادی چې ددوئ طرف ته دميلان طبع دکم والی په وجه سره ددوئ په خروج کې فتنه نشته .دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې شدة شهوة دجماع باعث دی ولکل ساقطة لاقطة لهذا دبوډ ی ښځوپه وتلوکې هم فتنه واقع کيږي البته دفجراوعشاء پروخت فاسق خلک ويده کيږي اودمغرب پروخت په خورک کې مشغوليږي په دي وجه په دي وختونوکې دبوډيوښځولپاره وتل مکروه نه دی.

ف: مگرفتوی داده چې په دي زمانه فسق کې په ټولولمونځونوکې دبوډيوښځووتل مکروه دي كمافي الهندية: وكره لهن حضور الجماعة الاللعجوز في الفجروالمغرب والعشاء والفتوى اليوم على الكراهة في كل الصلوات لظهور الفساد كذافي الكافي وهو المختار (هندية: ۱/۸۹، وكذافي ردالمحتار: ۱/۳۱۹)

(۱۵۲)وَفَسَدَ اقْتِدَاءُ رَجُلٍ بِامْرَأَةٍ أَوْصَبِيٍّ) أمّا(۱۵۳)وَطَاهِرٍ بِمَعْذُورٍ (۱۵۴)وَقَارِئٍ بِأُمِّيٍّ (۱۵۵)وَمُكْتَسٍ بِعَارٍ (۱۵۶)وَغَيْرِ مُومٍ بِمُومٍ (۱۵۷)وَمُفْتَرِضٍ بِمُتَنَفِّلٍ (۱۵۸)وَبِمُفْتَرِضٍ آخَرَ

**ترجمه**: اوفاسده ده دنراقتداء په ښځې يا هلک پسې ،اودپاک په معذورپسې ،اودقاری په امی پسې، اوجامه اغوستونکی په لغ پسې ،اوپه بغيراشاره دلمونځ اداء کونکی په اشاره په لمونځ کونکی پسې اودفرض اداء کونکی په متنفل پسې ،اوپه بل فرض اداء کونکی پسې .

**تشريح**: (۱۵۲)يعنی نارينه ولره دښځې اوهلک اقتداء کول ناجائزده دښځې اقتداء خوپه دي وجه ناجائزده چې نبی کريم ﷺ فرمايلي دي﴿أخِّرُوهُنَّ من حيث أخَّرَهُنَّ الله﴾ (ښځې مؤخري کړئ چيرته چې الله ﷻ دوئ موخري کړي دي )نوپه امام جوړلوکې ددوئ مقدم والی لازميږي ،اودهلک اقتداء په دوجه صحيح نه ده چې دهلک لمونځ دنه بالغ والی په وجه سره نفل دی لهذا دبالغ مفترض اقتداء په ده پسې صحيح نه ده .

ف: مشائخ بلخ په تراويح،عيدين اوصلوة کسوف کې دنابالغ امامت جائزگرځولی دی مگرصحيح داده چې جائزنه دی قال ابن عابدين: (قوله ونفل على الاصح) قال في الهداية وفي التراويح والسنن المطلقة جوزه مشائخ بلخ ولم يجوزه مشائخنا ومنهم من حقق الخلاف في النفل المطلق بين ابي يوسف ومحمد والمختار انه لايجوز في الصلوات كلها (ردالمحتار: ۱/۳۲۸)

ف: هلک که بالغ وي مگرامرداوبې ږيري وي نوده ترشالمونځ اداء کول جائزخو ده مگرغيرامرد له ده څخه مقدم دی خاص کرکله چې هغه امردصبيح اومليح وي .(فتاوی محموديه ۶،۳۱۵)

ف: دامام شافعی رحمه الله په نزددنابالغ امامت صحيح دی ولی چې عمروبن سلمه رضي الله عنه خپل قوم امام جوړکړی وو په کوم وخت کې چې دده عمرشپږ يا اوه (۷)کاله وو ،احناف ځواب ورکوي چې دادعمروبن سلمه رضي الله عنه دقوم اجتهاددی له نبی کريم ﷺ څخه ثابت نه دی . همدارازحضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي هلک دي امام نه جوړيږي ترڅوچې بالغ نه وي .

(۱۵۳)قوله وطاهر بمعذور اى وفسد ايضا اقتداء مصل طاهر بمعذور،يعني دپاک کس اقتداء په معذور يعني سلس البول (دکوم چې بولې جاري وي )وغيره په مريض پسې صحيح نه ده .همداراز دي پاکه ښځه دمستحاضه ښځې په اقتداء کې لمونځ نه اداء کوي ،په دي مسائلوکې اصل دنبی کريم ﷺ قول الامام ضامن (امام ضامن دی )يعنی دامام لمونځ دمقتدی لمانځه ته متضمن دی اوداهم قاعده ده چې شی له خپل ځان څخه کمتر یاهم مثل لره متضمن کيدای شې له خپل ځان څخه اقوی ته نه شې متضمن کيدای ،نوپه مذکوره صورتونوکې ځرنګه چې مقتدی پاک دی اوامام معذوردی په دي وجه دمقتدی لمونځ دامام له لمانځه څخه اقوی دی نودامام لمونځ دمقتدی لمانځه ته متضمن نه دی په دي وجه دمقتدی لمونځ نه صحيح کيږي .

(۱۵۴)قوله وقاری بامی اى وفسد اقتداء قارى بامى ،يعنى دقاری اقتداء په امی پسې صحيح نه ده ولی چې په دي صورت کې دمقتدی حال له امام څخه اقویٰ دی ،له قاری څخه مرادهغه کس دی دچاچې دومره مقدارقرآن مجيدیادوي چې په هغه سره لمونځ صحيح کيږي اوامی هغه دی دچاچې دومره قرآن مجيدیادنه وي .

(۱۵۵)قوله ومکتس بعار اى وفسد اقتداء مكتس بعار ،يعني دجامې اغوستونکی اقتداء په لڅ پسې نه ده صحيح ولی چې په دي صورت کې هم دمقتدی حال له امام څخه اقوی دی ،دجامې له اغوستونکی څخه مرادهغه کس دی دچاچې سترپټ وي که څه هم باقی بدن يې لڅ وي اوله لڅ څخه مرادهغه کس دی کوم چې مستورالعورة نه وي .

(۱۵۶)قوله وغيرموم بموم اى وفسد اقتداء غيرموم بموم ،يعنی په رکوع اوسجده سره دلمونځ کونکې اقتداء په اشاره سره په لمونځ کونکې پسې نه ده صحيح ولی چې دمقتدی حال اقوی دی اودامام حال اضعف..اوپه ماقبل کې تيره شوه چې داقوی حال والاپه اضعف حال والاپسې لمونځ نه شې کولی .

(۱۵۷)قوله ومفترض بمتنفل اى وفسد اقتداء مفترض بمتنفل ،يعني مفترض لره دمتنفل اقتداء کول جائزنه ده ولی چې اقتداء بناء (اتباع )ته ويل کيږي اودامام په حق کې وصف دفرضيت معدوم دی اودمقتدی په حق کې موجوددی ،اودامروجودی بناء پرعدمی نه شې صحيح کيدای .

(۱۵۸)قوله وبمفترض اخراى وكذافسد اقتداء مفترض بمفترض فرضا اخر ،يعنی ديوه فرض اداء کونکی اقتداء په بل فرض اداء کونکی پسې صحيح نه ده مثلاًدظهردلمانځه داداء کونکی اقتداء دعصر دلمانځه په اداء کونکی پسې جائزه نه ده ولی چې اقتداء نوم دی په تحريمه کې دشرکت اوپه افعال بدنيه کې دموافقت ،اوشرکت اوموافقت هغه وخت کيدای شې کله چې ددواړوپه تحريمه اوافعالوکې اتحاد وي نوځرنګه چې په مذکوره صورت کې په تحريمه کې اتحادنشته په دي وجه په اقتداء هم صحيح نه وي .

(۱۵۹)لااقتداء متوضي بمتيمم(۱۶۰)وغاسل بماسح(۱۶۱)وقائم بقاعد(۱۶۲)وباحدب(۱۶۳)وموم بمثله(۱۶۴)ومتنفل بمفترض(۱۶۵)وإن ظهران إمامه محدث اعاد(۱۶۶)وان اقتدى امى وقارى بامى اواستخلف اميا فى الاخرين فسدت صلوتهم

**ترجمه** :اواقتداء فاسده نه ده داودس والاپه تيمم وهونکې پسې ،اودوينځونکې په مسح کونکی پسې ، اوولاړکس په ناست پسې ،اوپه کوپي پسې ،اوداشاري کونکې په خپل مثل پسې ،اودنفل کونکې په فرض اداء کونکې پسې ، اوکه ظاهرشوچې دده امام بی اودسه وونواعاده دي وکړي ،که اقتداء وکړه يوه امی

اویوه قاري په امي کس پسې یا يې نائب جوړ کړ امي کس په اخرنيو دوو رکعتونو کې نو فاسديږي دټولو لمونځ.

**تشريح**: (۱۵۹) قوله لاالقداء متوض بمتيمم اى لايفسد اقتداء متوض بمتيمم بل صح ،يعنى دشيخينو په نزد متوضى کس دتيمم وهونكى اقتداء كولى شي او دامام محمد رحمه الله په نزد جائز نه ده ..دامام محمد رحمه الله دليل دادى چې تيمم طهارت ضروريه دى لهذا دمتيمم حال ادنى دى .او وضو طهارت اصليه دى نو دمتوضى حال اقوى دى او قاعده وړاندي تيره شوه چې ادنى حال والا داقوى حال والاامامت نه شي كولى په دي وجه دمتوضى اقتداء په متيمم پسې صحيح نه ده. دشيخينو دليل دادى چې تيمم طهارة مطلقه دى ولى چې موقت نه دى ترلسو كلونو پوري هم كه اوبه نه وي نو مشروع دى لهذا متيمم او متوضى يو شان دي لهذا دمتوضى اقتداء په متيمم پسې صحيح ده ،همدراز مروى ده چې حضرت عمروبن العاص رضي الله عنه په تيمم سره صحابه كرامو رضي الله عنهم ته لمونځ وركړى ووحال داچې هغوئ اودسونه كړي وو بيانبى كريم صلى الله عليه وسلم په دي خبرشو مګرنبى كريم صلى الله عليه وسلم داعاده صلوة حكم ونه كړ،دشيخينو قول راجح دى كمافى شرح التنوير:(وصح اقتداء متوضئ)لاماء معه (بمتيمم)(الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ۱/۴۳۵)

(۱۶۰) قوله وغاسل بماسح اى لايفسد اقتداء غاسل بماسح بل صح ،يعنى دپښو دوينځونكى كس پرموزو په مسح كونكى كس پسې اقتداء كول جائزده ولى چې دموزو والا پښې پريمنځلې بيا يې موزي په پښو كړي دي دموزي په وجه سره حدث ترپښې پوري نه رسيږي لهذا داكس پښې وينځونكى پاتې شوا وكوم نجاست چې په موزه لګيدلى دى هغه مسح زائلوي په دي وجه دپښو وينځونكى لره جائزده چې په موزو په مسح كونكى پسې اقتداء وكړي.

(۱۶۱) قوله وقائم بقاعداى لايفسد اقتداء قائم بقاعدبل صح ،يعنى دشيخينو په نزد قائم په قاعد پسې لمونځ اداء كولى شي ،دامام محمد رحمه الله په نزد جائز نه ده ،دقياس تقاضاهم همداده ولى چې دقائم حال له قاعد څخه اقوى دى په دي وجه چې قاعد معذوردى او قائم غيرمعذوردى ،ليكن شيخينو داقياس دحديث په وجه پريښى دى هغه داچې نبى كريم صلى الله عليه وسلم په مرض الوفات كې په ناسته سره لمونځ وركړى وو او قوم له شاپسې ولاړوو.

ف:دشيخينو قول راجح دى كمافى شرح التنوير:(وصح اقتداء قائم بقاعد)يركع ويسجدلانه صلى الله عليه وسلم صلى آخر صلاته قاعداوهم قيام وابوبكر يبلغهم تكبيره (الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ۱/۴۳۵)

(۱۶۲) قوله وباحدب اى لايفسد اقتداء قائم باحدب بل صح ،يعنى دشيخينو په نزد روغ كس لره په كوپى پسې (كوم ته چې په فارسى كې كوزه پشت ويل كيږي) اقتداء كول جائزده ولى چې دكوپي نصف اسفل مستوى دى لكه قائم چې دقاعد اقتداء كولى شي ولى چې دقاعد نصف اعلى مستوى دى.

ف:دامام محمد رحمه الله په نزد دكبري اقتداء جائزنه ده .دشيخينو قول راجح دى كمافى الشامية :(قوله على المعتمد)هوقولهماوبه اخذعامة العلماء خلافالمحمدوصحح فى الظهيرية قوله ولايخفى ضعفه فانه ليس ادنى حالامن القاعد (ردالمحتار: ۱/۴۳۶)

(۱۶۳)قوله وموم بمثله اى لايفسد اقتداء موم بمثله بل صح ،يعني په اشاره سره دلمونځ كونكي اقتداء په بل اشاره سره په لمونځ كونكي پسې صحيح ده ولې چې ددواړه حالت يوشان دى .

ف:مګرشرط دادى چې امام ولاړياناست وي اوكه امام پروت وي اومقتدى ولاياناست وي نوبناء برقول مختارپه دي وخت كې دمقتدى اقتداء صحيح نه ده كمافي شرح التنوير:(وموم بمثله) الاان يومى الامام مضطجعا والمؤتم قاعدااو قائماهو المختار:قال ابن عابدين:(قوله الاان يؤمى الخ)فانه لايجوز لقوة حال المامو م(الدرالمختارمع ردالمحتار: ۱/۳۶٦)

(۱۶۴)قوله ومتنفل بمفترض اى لايفسد اقتداء متنفل بمفترض بل صح ،يعني متنفل لره دمفترض اقتداء كول جائزده ولې چې دمفترض حالت قوى اودمتنفل حالت ضعيف دى نوپه دي كې دضعيف بناء پرقوى دى كومه چې جائزده ،مګرسوال دادى چې په رباعي لمانځه كې دامام په اخيرنيودووركعتونوكې قرأة فرض نه دى حال داچې دمتنفل مقتدى په اخرنيودووركعتونوكې هم قرأة فرض دى لهذاپه اخرنيودووركعتونوكې اقتداء المفترض بمتنفل ده كومه چې جائزنه ده؟ځواب :داقتداء اواتباع په وجه سره دمقتدى دلمانځه اوس هغه حكم دى كوم چې دامام دلمانځه دى نوځرنګه چې دامام په حق كې په اخرنيودووركعتونوكې قرأة نفل دى فرض نه دى دمقتدى په حق كې به هم نفل وي .

(۱۶۵)كه چاپه امام پسې لمونځ اداء كړوروسته مقتدى ته معلومه شوه چې دده امام بې اودسه وونودا كس دي خپل لمونځ راوګرځوي ولې مروى ده﴿ان النبي ﷺ صلى باصحابه ثم تذكرجنابة فاعادهاوقال من ام قوماثم ظهرانه كان محدثااوجنبا اعادصلوته واعادوا﴾(يعني نبي كريم ﷺ صحابه كرامو ﷺ ته لمونځ وركړيبا دجنابت ديادېدلوپه وجه سره دلمانځه اعاده وكړه اووي فرمايل ځوک چې قوم ته لمونځ وركړي بيا ښكاره شي چې دى خوبې اودسه وويا جنب وونودى دي دلمانځه اعاده وكړي اوقوم د ي دخپل لمانځه اعاده وكړي ،دامام شافعي رحمه الله په نزدكه له اقتداء ځخه وروسته مقتدى ته دامام بې اودس والى معلوم شونوپرده دلمانځه اعاده نشته ولې چې دده په نزددعلى سبيل الموافقت دلمانځه دافعالوداداء كولونوم اقتداء دى يعني دامام لمونځ دمقتدى لمانځه ته متضمن نه دى لهذادامام دلمانځه په فاسديدلو سره دمقتدى لمونځ نه فاسديږي .

(۱۶۶)كه يوه امّي اويوه قارى دبل امّي اقتداء وكړه نودتولولمونځ فاسديږي دفسادوجه داده چې دقارى په موجودوالي كې دامّي امام جوړل صحيح نه دي په دي وجه چې دقارى په موجودوالي كې تول په قرأة قادرشمارل كيږي ولې چې دقارى دامام جوړلوپه صورت كې دقارى قرأة دټولوله طرف ځخه قرأة شمارل كيږي اوسره له وجوده دقدرت په قرأة دقرأة په پرېښودلوسره لمونځ فاسديږي .همداشان كه قارى دڅلورركعتي لمانځه په اخيرنيودووركعتونوكې امّي خليفه جوړ كړنوپه دي صورت كې هم دټولولمونځ فاسديږي دفسادوجه داده چې دلمانځه يوركعت هم له قرأة ځخه خالي نه وي خواه كه حقيقة وي ياتقديرااوځرنګه چې دامّي په حق كې تقديراهم قرأة نشته ولې چې په امّي كې دقرأة اهليت نشته په دي شان داخيري دووركعتودبلاقرأة والي په وجه سره دټولولمونځ فاسديږي .

## باب الحدث في الصلوة

### داباب په لمانځه کې دبې اودسه کېدلو په بيان کې دی

ددې باب له باب صفة الصلوة سره مناسبت دادی چې حدث په لمانځه کې له عوارضو څخه دی او عوارض دشي له وجود څخه وروسته پيښيږي نوپه دې وجه سره دده ذکر کيدل له باب صفة الصلوة څخه وروسته مناسب دي اوتر باب مايفسد الصلوة دوړاندي کولو وجه يې داده چې دحدث في الصلوة لپاره داضروري نه ده چې دلمانځه مفسد به وي بلکه داسي هم کيدلای شي چې حدث دي پيښ شي مگر لمونځ فاسد نه وي لکه چې ددې تفصيلي صورت به په کتاب کې راشي ، حدث په لغت کې دقضاء حاجت په معنی دی اودشريعت په اصطلاح کې هغه ټولی خبري [امور] حدث دي دکوموپه وجه چې غسل يااودس واجب شي.

(١٦٥) وَإِن سَبَقَهُ حَدَثٌ تَوَضَّأَ وَبَنَى وَاسْتَخْلَفَ لَوْ إِمَامًا كَمَا لَوْ حُصِرَ عَنِ الْقِرَاءَةِ

**ترجمه**: چاته چې بې اودسي پيښه شي هغه دي اودس وکړي اوبنادي وکړي اويوڅوک دي نائب کړي که امام وي لکه چې له قرآت څخه عاجز شي.

**تشريح** : که يوڅوک دلمانځه په حالت کې بې اختياره بې اودسه شي نوداسړی دي دستي راوګرځي اواودس دي وکړي بنادي وکړي يعني پاتې لمونځ دي له اوداسه وروسته پوره کړي اوکه داکس امام وي نوله مقتديانو څخه دي کوم يو خپل خليفه جوړکړي دکوم چې صورت دادی چې هغه ترکالو ونيسي اوترمحراب يې بوځي اوپه خپله دي اودس وکړی بنادی وکړی دقياس تقاضا خوداده چې لمونځ له سره راوګرځوي همدادامام شافعي اوامام مالک قول دی ليکن احنافو دنبی ﷺ ددوحديثو له کبله قياس ترک کړی دی هغه دوه حديثونه دادي(نمبر۱) ﴿قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَاءَ أَوْ رَعَفَ أَوْ أَمْذَى فِي صَلَاتِهِ فَلْيَنْصَرِفْ وَلْيَتَوَضَّأْ وَلْيَبْنِ عَلَى صَلَاتِهِ مَا لَمْ يَتَكَلَّمْ﴾ (يعنی چا قی ووهی يايې پوزه وينې شوه يايې مذي راووتل په لمانځه کې نوهغه دي راوګرځي اودس دي وکړي اوپرخپل لمانځه دي بنا وکړي ترڅوچې يې خبري نوي کړې ) (نمبر۲) ﴿قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَقَاءَ أَوْ رَعَفَ فَلْيَضَعْ يَدَهُ عَلَى فَمِهِ وَيُقَدِّمْ مَنْ لَمْ يُسْبَقْ بِشَيْءٍ﴾ (يعنی که په تاسي کې يو څوک دلمانځه په حالت کې قی ووهي يايې پوزه وينې شي نوپرخپله خوله دي لاس ونيسي او يو غير مسبوق سړی دي مخته کړي)

**دبنادجواز شرطونه**: دبنادصحت لپاره څو شرطونه دي.(۱)چې حدث به موجب دغسل نه وي (۲) حدث به نادرالوجود حدث نه وي .(۳)دحدث په حالت کې کوم رکن ادانه کړي(۴ )داسي کوم دلمانځه منافی عمل ونه کړي چې له هغه څخه ده لره چاره وي (۵ ) بې له عذر په اوداسه کي ځنډونه کړي (۶)حدث سابق ښکاره نه شي مثلا دمسح مده پوره شي (۷) که امام وي نوکوم داسي کس خپل خليفه جوړنه کړي چې په هغه کې دامامت اهليت نه وي .

**ف**: که داکس امام وو اوده خليفه جوړکړ اوپه خپله ولاړی اوداسه يې وکړ نوکه دده خليفه فارغ شوی وو نوده لره اختيار دی که وغواړي نوچې چيرته يې اودس کړی وي هلته دي بنا وکړي لمونځ دي پوره کړي ولی چې په دې کې تقليل مشی ده اوکه وغواړي خپل ځای ته دي بيرته راشي ولی چې په دې دول به

دلمانځه داداء کولومحل یووي. همدا دوه اختیاره منفرد لره هم شته. اوکه دده خلیفه نه ووفارغ شوی نوکه دده اود امام ترمنځ حائل موجود وو نووجوباً دي خپل ځای بیرته راشي اوخپل لمونځ دي پوره کړي دمقتدي هم همدا حکم دی کوم چې دامام دی کمافی شرح التنویر (ویتم صلاته ثمه) وهو اولاتقلیلا للمشی (اویعود الی مکانه لیتحدمکانها (کمنفرد) فانه یخیر وهذا کله (ان فرغ خلیفته والاعاد الی مکانه) حتما لو بینهما مایمنع الاقتداء (کالمقتدی اذاسبقه الحدث) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۱/۴۴۸)

ف:په مذکوره مسئله کې که څه هم بنا کول جائز دی مګر له سره لمونځ راګرځول افضل دی ترڅو له اختلاف څخه احترازوشي، بیا هم داستیناف (له سره راګرځولو) لپاره داضروري ده چې داول لمانځه لپاره دي سلام وګرځوي یادي په داسي فعل ختم کړي چې له لمانځه سره ضد وي بیا دي نوی لمونځ پیل کړي بې له سلام یابې له منافي فعل څخه استیناف (له سره راګرځولو) صحیح نه دی کمافی شرح التنویر:(واستینافه افضل) تحرزاً عن الخلاف: قال ابن عابدین (قوله واستینافه افضل) ای بان یعمل عملاً یقطع الصلوة ثم یشرع بعد الوضوء (الدرالمختار مع ردالمحتار: ۱/۴۳۶)

(۱۶۶) قوله کمالوحصر عن القراة ای کمالوحصر عن القراة فی الصلوة فاستخلف احداً جاز :یعني لکه څرنګه چې په مذکوره بالاصورت کی امام ته دیوچاخلیفه جوړه ول جائزدي همدا شان که کوم امام په لمانځه کې دننه سره له دې چې قرأة یې یادوي مګردوارخطایي له کبله داسي عاجزشو چې قرأة یې نشوای ویلای نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نز ده ته جائز ده چې یومقتدي نائب جوړکړي ،دصاحبینو په نز په دي صورت کی نائب استخلاف جائزنه دی ولی چې ددي عذر پیښیدل نادر دي لکه دلمانځه په حالت کې چې جنب کیدل نادر دي په دي وجه استخلاف جائزنه دی .البته که دچا بالکل هیر شو او هیڅ یې نشو ویلای یعنی بالکل یې په یادپاتي نه شونو دداسي کس لپاره خلیفه جوړول بالاتفاق جائزنه دی بلکه دامام دامّي والي په وجه سره دتولو لمونځ باطل شو لهذا له سره دي نوی لمونځ وکړي .

ف:دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی کمافی شرح التنویر (یستخلف اذا حصر عن القراة قدرالمفروض) لحدیث ابی بکرالصدیق رضی الله عنه فانه لمااحس بالنبی ﷺ حصر عن القراة فتاخر فتقدم النبی ﷺ واتم الصلوة فلولم یکن جائزا لمافعله، قال ابن عابدین (قوله لمافعله) ای النبی؛ وماکان جائزا له یکون جائزا لامته هو الاصل لکونه قدوة لهم وفیه ایضاً ولایستخلف اجماعاً (لونسی القراة اصلاً) لانه صار امیاً، ففی الشامیة (قوله ولایستخلف لانه صار امیاً) فبطلت صلوة القوم واماصلوة الامام ففی الفصل السابع من الذخیرة ان القاری اذاصلی بعض صلوته فنسی القراة وصار امیاً فسدت عنده ویستقبلها (الدرالمختار مع ردالمحتار: ۱/۴۳۷)

(۱۶۷) وَإِنْ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ بِظَنِّ الْحَدَثِ أَوْ جُنَّ أَوِ احْتَلَمَ أَوْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ اسْتَقْبَلَ (۱۶۸) وَإِنْ سَبَقَهُ حَدَثٌ بَعْدَ التَّشَهُّدِ تَوَضَّأَ وَسَلَّمَ (۱۶۹) وَإِنْ تَعَمَّدَهُ أَوْ تَكَلَّمَ تَمَّتْ صَلَاتُهُ

ترجمه:که له مسجد څخه ووتی داودس دماتېدلو په ګمان سره یالیونی شو یاجنب شو یابې هوښه شو نوله سره دې راوګرځوي ، اوکه بې اودسه شو له التحیات ویلو وروسته نواودس دي وکړي اوسلام دي وګرځوي اوکه یې په قصدا اودس مات کړ یایې خبري وکړي نودده لمونځ پوره شو .

تشریح :یعني که یوڅوک په دې خیال له مسجد څخه ووځي چې زما اودس مات شو بیامعلومه شوه چې دده اودس نه دی مات شوی نوپه دي صورت کې به داکس خپل لمونځ بیرته له سره اداء کوي بناء کول جائزنه ده ولی چې له مسجد څخه وتل عمل کثیر دی اوبې له ضرورته دی لهذانودده لپاره بناکول جائزنه دي ،همداشان که یو څوک په لمانځه کې لیونی شو یایوڅوک دلمانځه په حالت کې جنب شو یاپر لمونځ

كونكي بې هو ښي راغله نو په دې صورتونو كې به هم لمونځ له بيرته له سره اداء كوي ولې چې د دې عوارضو پيښېدل نادر دى لهذا دا دهغو عوارضو په معنى كې نه دي دكمو په حق كې چې نص وارد شوى دى يعني د رسول الله ﷺ قول .من قاء اورعف في صلوته الخ.

ف: همداشان كه لمونځ كونكي په زوره وخندل نودده لپاره هم بنا جائزنه ده بلكه له سره به نوى لمونځ اداء كوي ولې چې قهقهه(په زوره خندل) په منزله دكلام ده په دې وجه چې په قهقهې اوكلام دواړو سره دسامع فهم ته دمافى الضمير انتقال كيږي اوكلام خودلمانځه قاطع دى نو قهقهه به هم قاطع وي لهذا دقهقهې كونكي لپاره هم بنا جائز نه ده كمافى العناية في شرح الهداية (وكذالك اذاقهقه لانه) اى فعل القهقه (بمنزلة الكلام) في ان كلامهما ينقل المعنى من ضميره الى فهم السامع (وهو) اى الكلام (قاطع) لانه ﷺ قال مالم يتكلم (العناية على هامش الفتح: ۱/ ۳۳۳ كذافي الكفاية: ۱/ ۳۳۴)

(۱۶۸) يعني كه لمونځ كونكى له تشهد ويلو وروسته بې اودسه شو نو داكس دې راو ګرځي اودس دې وكړي اوسلام دې وګرځوي ولې چې سلام ګرځول واجب دى نو په دې وجه سره اودس كول ضروري دى ترڅو چې سلام وګرځوي اوكه دا كس امام وو نو يو څوك دې خليفه جوړ كړي ترڅو هغه په مقتديانو سلام وګرځوي.

(۱۶۹) اوكه لمونځ كونكى له تشهد ويلو وروسته په قصد اودس مات كړ يا يې په قصد خبري وكړي نو د دلمونځ پوره شو ولې چې دقاطع الصلوة دوجود له كبله بناء كول خو متعذر شو او دلمانځه له فرائضو څخه دده پر ذمه هيڅ فرض پاته نه دى ولې چې ترټولو اخيري فرض دامام ابو حنيفه رحمه الله پر مذهب خروج په فعل د لمونځ كونكي دى هغه په قصدي فعل سره موجود شو.

ف: ليكن ښه خبره داوه چې مصنف دتمت صلوته پرځاى صحت صلوته ويلى واى ولې چې دده پر ذمه سلام هم پاته دى چې دهغه په وجه سره دده لمانځه ته تام نشي ويل كيداى ولې چې سلام ګرځول واجب دى چې اوس دهغه استدراک هم ممكن نه دى دكوم په وجه سره چې پر ده دلمانځه ادعاده واجب ده كمافي شرح التنوير (ان تعمد عملا ينافيها بعد جلوسه قدر التشهد) ولو بعد سبق حدثه (تمت) لتمام فرائضها نعم تعاد لترک واجب السلام قال ابن عابدين (قوله تمت) اى صحت اذلا شک انها ناقصة لترک الواجب (الدر المختار مع رد المحتار: ۱/ ۳۴۸) دامام شافعي رحمه الله پر مذهب څرنګه چې سلام ګرځول فرض دى لهذا دده پر مذهب په مذكوره بالاصورتونو كې لمونځ صحيح نه دى.

(۱۷۰) وبطلت إن رأى متيمم ماء او تمت مدة مسحه او نزع خفيه بعمل يسير او تعلم أمي سورة او وجد عار ثوبا او قدر مومئ او تذكر فائتة او استخلف أميا او طلعت الشمس في الفجر او دخل وقت العصر في الجمعة او سقطت جبيرته عن برء او زال عذر المعذور

**ترجمه**: اولمونځ باطليږي كه تيمم وهونكي كس اوبه وليدي يا دمسح مده پوره شي يا موزي په عمل قليل سره وكاږي يا امي شخص يو سورة زده كړي يا لغ كس جامه پيدا كړي يا اشاره كونكى شخص پر ركوع اوسجده قادر شي يا يې قضاء شوى لمونځ په ياد شي يا امي كس خليفه جوړ كړي يا دسهار په لمانځه كې لمر راوخيږي يا دجمعې په لمانځه كې د دعصر وخت داخل شي يا دجوړ والي له كبله جبيره ولويږي يا دمعذور شخص عذر ختم شي.

**تشريح :** په دې عبارت کې مصنف رحمه الله دولس(۱۲) مشهوري اختلافي مسئلي بيان کړي دي . /نمبر۱ متيمم لمونځ کونکي دتشهدپه اندازه له کښېنستلووروسته اوبه ووليدي يعني دابوپه استعمال قادرهم شي /نمبر۲ پرموزوباندي مسح کړي وه دتشهدپه اندازه له کښېنستلو وروسته دمسح مده پوره شوه په دې شرط چې دپښو پرېمنځلو لپاره به دابو پراستعمالولو قادر وي /نمبر۳.له تشهد څخه وروسته يې په عمل قليل سره موزې وکښلې، مصنف رحمه الله لفظ دخفين تثنيه ويلې دى دااتفاقادى ولې چې ديوې موزې هم دغه حکم دى /نمبر۴ لمونځ کونکى امّي وو له تشهد څخه وروسته يې يوسورة زده کړ . له زده کولو څخه مراد يادېدل دى تعليم اوتعلم مرادنه دى ولې چې تعلّم عمل کثير دى /نمبر ۵ لمونځ کونکي په لڅ بدن لمونځ کوى له تشهد څخه وروسته يې جامه پيدا کړه ، په دې شرط چې جامه به پاکه وي يا نجسه وي ليکن دپاکولو اسباب موجود وي او دومره وي چې عورت پرې پټېږي . /نمبر ۶ قوله اوقدر مؤم اى قدرمؤم على الرکوع وسجو د ،لمونځ کونکى له رکوع اوسجدې څخه عاجز وو په اشاره سره يې لمونځ اداء کوى له تشهد څخه وروسته پر رکوع اوسجده قادر شو . /نمبر۷ لمونځ کونکي ته له تشهد څخه وروسته قضاء شوى لمونځ وریاد شو ، په دې شرط چې داکس صاحب ترتيب وي اوپه وخت کې هم وسعت (پراخي ) وي . /نمبر۸ امام قاري وو له تشهد څخه وروسته ده ته حدث پيښ شو ده امّي خليفه جوړ کړ . /نمبر ۹ دسها ر په لمانځه کې دتشهد په اندازه له کښېنستلو وروسته لمر راوختى . /نمبر۱۰ له تشهد څخه وروسته دعصر وخت داخل شو په داسي حال کې چې داکس دجمعې په لمانځه کې وو . /نمبر ۱۱ لمونځ کونکي پرجبيره مسح کړې وه له تشهد څخه وروسته دجوړ والي له کبله ولويده. /نمبر۱۲ لمونځ کونکى معذور وو له تشهدوروسته دده عذر منقطع شو مثلادنکسير مريض وو (چې له پوزى څخه يې همېشه وينه روانه وه ) له تشهد څخه وروسته دده نکسير ختم شو .

په مذکوره بالاصورتونوکي دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد لمونځ باطل شو اودصاحبينو په نزد لمونځ پوره شو څرنگه چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد په اختياري فعل سره له لمانځه څخه وتل فرض دى ولې چې ديوبل فرض لمانځه اداء کول ممکن نه دى ترڅوچې له دې لمانځه څخه ونه وځي اوله کوم فعل څخه بغير چې ترفرضو پوري رسيدل ممکن نه وي هغه هم فرض دى په دې وجه ددې عوارضو له لمانځه څخه تر وتلو وړاندي پېښېدل داسي دي لکه دلمانځه په منځ کې پېښېدل اودلمانځه په منځ کې ددې عوارضو په پېښېدلو سره لمونځ باطلېږي لهذا له اخيري قعدې څخه وروسته هم دلمانځه باطلونکي شيان پېښېدلى شي. دصاحبينو په نزد له لمانځه څخه په اختياري فعل سره وتل فرض نه دى لهذا له تشهد څخه وروسته ددې عوارضو پېښېدل داسي دي لکه له سلام گرځولو وروسته پېښېدل ظاهره ده چې داعوارض له سلام څخه وروسته مبطل دلمانځه نه دي نوله تشهد څخه وروسته هم مبطل دلمانځه نه دي.

**ف:** دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح اومفتى به دى كمافى الشامية (قوله وفى الشرنبلالية والاظهر قولهما الخ) اقول عزاذالك الشرنبلالي فى رسالته الى البرهان ثم رده بانه لا وجه لظهوره فضلا عن كونه اظهر لانه استدل على ذالك بماليس فيه دلالة عليه ثم قال الشرنبلالي بعدما اطال فى رده ومن المقرر طلب الاحتياط فى صحة العبادة لتبرأ ذمة المكلف بها وليس الاحتياط الا بقول الامام الاعظم انها تبطل

او قلت وعليه المعون (ردالمحتار: ۱/۴۴۹، کذا في الهندية ۱/۹۷) له دې څخه دا هم ثابته شوه چې د راجح قول مطابق خروج بصنع المصلي فرض دی.

**ف**: که لمونځ کونکي يو طرف ته سلام وګرځوی او دستي بې اودسه شو نو لمونځ يې صحيح کيږي. (فتاوی محمودیه: ۶/۵۸۱)

**ف**، که رش زيات وو اويو سړی په اول صف کې وو او دده اودس مات شو نو د هر صف د دو(۲) کسانو په مابين کې دې راووځي او که راوتل مشکل وو نو هلته دې کښيني په لمانځه کې دې ګډون نه کوي ولې چې د لمانځه د اصلاح (اودس وغيره) لپاره د لمونځ کونکو ترمخ تيريدل جائز دي لهذا د تلو په وخت کې دې د دوئ ترمخ تېر شي او د بېرته راتلو تر وخته که هغه ځای خالي وو نو د دوئ ترمخ په تيريدلو سره دې هغه ځای ډک کړي او که مخته د تيريدلو ځای نه وو نو د صف په پړي کولو سره هم تلای شي. (محمودیه: ۶/۵۷۹)

(۱۷۱) وَصَحَّ اسْتِخْلَافُ الْمَسْبُوقِ (۱۷۲) فَلَوْ أَتَمَّ صَلَاةَ الْإِمَامِ قَدَّمَ مُدْرِكًا يُسَلِّمُ بِهِمْ (۱۷۳) وَتَفْسُدُ بِالْمُنَافِي صَلَاتُهُ دُونَ الْقَوْمِ (۱۷۴) كَمَا تَفْسُدُ بِقَهْقَهَةِ إِمَامِهِ لَدَى اخْتِتَامِهِ (۱۷۵) لَا بِخُرُوجِهِ مِنَ الْمَسْجِدِ وَكَلَامِهِ (۱۷۶) وَلَوْ أَحْدَثَ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ تَوَضَّأَ وَبَنَى وَأَعَادَهُمَا (۱۷۷) وَلَوْ ذَكَرَ رَاكِعًا أَوْ سَاجِدًا سَجْدَةً فَسَجَدَهَا أَعَادَهُمَا (۱۷۸) وَلَزِمَ الْمَأْمُومَ الْوَاحِدَ لِلِاسْتِخْلَافِ بِلَا نِيَّةٍ

**ترجمة**: او صحيح دی نائب جوړول د مسبوق بيا که ده پوره کړ د امام لمونځ نو مخته دې کړي مدرک هغه دې په قوم سلام وګرځوي، او فاسديږي په منافي د لمانځه سره دده لمونځ نه د قوم، لکه چې فاسديږي دده د امام په قهقه (په زوره خندا) سره لمونځ په وخت د اختتام کې، نه د امام له مسجد څخه په وتلو سره او دده په خبرو کولو سره، او که بې اودسه شو په رکوع کې يا په سجده کې نو اودس دې وکړي او بنا دې وکړي او رکوع وسجده دې راوګرځوي، او که يې په ياد شو په رکوع يا سجده کې سجده او سجده يې وکړه نو هغه دې نه راوګرځوي، او متعين کيږي يو مقتدي د نائب والي لپاره بې له نيت څخه.

**تشریح**: (۱۷۱) که په لمانځه کې د امام اودس مات شو نو دده لپاره جائز دی چې يو مسبوق مقتدي (مسبوق هغه کس دی چې په دومره تاخير سره له امام سره شريک شي چې لږ تر لږه دده يو رکعت له امام سره يو اځي پاته شي) خپل نائب جوړ کړي ولی چې دده او ده په تحريمه کې مشارکت موجود دی البته د غير مسبوق شخص نائب جوړول اولی دی ولی چې هغه د لمانځه پر اتمام باندې تر مسبوق زيات قادر دی.

(۱۷۲) نو چې کله دا مسبوق خليفه د امام لمونځ مکمل کړي نو اوس دې يو داسې مقتدي مخته کړي چې هغه له شروع څخه له امام سره شريک وي هغه دې په مقتديانو سلام وګرځوي ولی چې په خپله د مسبوق لمونځ تر اوسه لا مکمل نه دی لهذا د مقتديانو د سلام ګرځولو لپاره دې يو غير مسبوق مقتدي مخته کړي او خپله دې هغه رکعتونه ادا کړي د کومو په وجه سره چې دی مسبوق شوی وو.

**ف**: امام ته چې کله بې اودسي پيښه شي نو چې څوک خليفه جوړ کړي که مسبوق وي که مدرک هغه ته دې د پاتې رکعتونو تعداد د ګوتو په اشاره وروښايي او که يې رکوع پر ذمه پاته وه نو پر زنګنو (ګونډو) باندې او د سجدې صلبيې لپاره دې پر تندي باندې او د سجدې تلاوت لپاره دې پر تندي او ژبه سره او د سجدهٔ سهوي لپاره دې پر سينه باندې په لاس اېښو د لو سره اشاره وکړي کما في الدر المختار: ويشير بأصبع لبقاء ركعة وبأصبعين

لركبتين، ويضع يده على ركبته لفرك ركوع، وعلى جبهته لسجود، وعلى فمه لقراة، وعلى جبهته ولسانه لسجودتلاوة، اوصدره لسهو (الدرالمختارعلى ردالمحتار ١/٣٤٣)

(١٧٣) اوس كه له دي مسبوق خليفه څخه كوم دلمانځه منافي كاركيږي نوددي په وجه سره خپله دده لمونځ خوفاسديږي دنورو مقتديانو لمونځ نه فاسديږي ولې چې دلمانځه فاسدونكى په خپله دده په حق كې دلمانځه په منځ كې دى په دي وجه دده لمونځ فاسديږي اودمقتديانو لمونځ ځرنګه چې له دي مفسد څخه وړاندي مكمل شوى دى لهذا ددوئ لمونځ نه فاسديږي.

ف: اول امام كه تر دا وخته پوري له خپل لمانځه څخه فارغ شوى وو نودده لمونځ نه دى فاسد اوكه نه وو فارغ شوى نو لمونځ يې فاسديږي وهوالاصح ولې ده چې كوم وخت مسبوق خپل خليفه جوړكړ نو په خپله ددي مسبوق مقتدي شو او مسبوق دده امام شو اودامام دلمانځه دفساد په وجه سره دمقتدي لمونځ هم فاسديږي كمافى شرح التنوير: (وكذا) تفسد (صلوة الامام) الاول (المحدث ان لم يفرغ فان فرغ) بان توضأ ولم يفتمش لاتفسد فى الاصح لمامر انه كمؤتم (ردالمحتار: ١/٣٥٢)

(١٧٤) مذكوره بالا صورت داسي دى لكه چې دمسبوق كس امام دخپل لمانځه پوره كولو ته قريب قهقه (په زوره خندا) وكړي نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد په داصورت كې دمسبوق لمونځ فاسديږي مګر دامام لمونځ نه فاسديږي حال داچې دصاحبينو په نزد ديوچا لمونځ هم نه فاسديږي ولې چې ددوئ په نزد په دي صورت كې ددي عارض په وجه سره په خپله دامام لمونځ نه فاسديږي سره له دي چې دقهقه صدوروله امام څخه راغلى دى (يعني امام خندلي دي) نودمسبوق لمونځ خوپه طريقه اولى سره نه فاسديږي، دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد ځرنګه چې په دي صورت كې دلمانځه فاسدونكى دامام دلمانځه له كوم جز سره چې يوځاى شي هغه جزءفاسديږي لهذا دمسبوق لمونځ هم فاس ديږي ولې دلمانځه فاسدونكى عمل چې دمقتدي دلمانځه له كوم جزسره يوځاى شي هغه جزءفاسديږي كوم چې دپاتي لمانځه دبناليپاره مانع دى لان بناء على الفاسد فاسد البته دامام دلمانځه اركان ځرنګه چې پاى ته رسيدلي دي لهذا امام لره دخپل لمانځه پردي جزء فاسدباندې دبنا ضرورت نشته په دي وجه دامام لمونځ نه فاسديږي.

ف: دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجع دي كماقال الشيخ عبدالحكيم الشاه ولكوتي الشهيد: واختاروا ههنا قول الامام ومشى عليه المحققون (هامش الهداية ١/٩٨. وقال شارح التنوير (وتفسد صلوة مسبوق) عندالامام (بقهقهة امامه وحدثه العمد فى) اى بعد (قعوده قدرالتشهد) الااذالم يدركه بسجدة لعادالفراده (ردالمحتار: ١/٣٥٢)

(١٧٥) قوله لابخروجه اى لاتفسد صلوة المسبوق بخروج الامام، يعني كه امام دلمانځه اتمام ته نژدي له مسجد څخه ووتى ياپه دي حالت كې امام خبري وكړي نودمسبوق لمونځ نه فاسديږي ولې چې دلمانځه داتمام پر وخت له مسجد څخه وتل ياخبري كول دلمانځه مفسدنه دي بلكه قاطع دلمانځه دى چې په هغه (قاطع) سره دمسبوق لمونځ نه فاسديږي.

(١٧٦) كه ديو شخص په ركوع ياسجده كې اودس مات شي نوداشخص دي ولاړشي اودس دي وكړي پاته لمونځ دي پوره كړي اوپه كومه ركوع وسجده كې چې يې اودس مات شوى وو دهغې اعاده دي

هم ضرور وکړي ولی چې دارکوع اوسجده نه ده پوره شوې په دي وجه چې دکوم رکن تکمیل له ده څخه په انتقال سره کیږي اودانتقال پروخت دده اودس نه وو نودرکن دنه پوره کیدلو په وجه سره اعاده ضروري ده.

ف: مګر شرط دادی چې سربه له رکوع اوسجدي څخه د ادا. په نیت نه اوچتوي که داسي نه وي نولمونځ به فاسدیږي ولی داخبره وړاندي تیره شوه چې دبناليپاره داشرط دی چې دحدث په حالت کې یو رکن ادا نه کړي كمافي شرح التنوير: (ولواحدث الامام) لاخصوصية في هذا المقام (في ركوعه اوسجوده لوضا وبنى واعادهما) في البناء على سبيل الفرض (مالم يرفع راسه) منهما (مريدا للاداء امااذارفع) راسه (مريدابه اداء ركن فلا) يبنى بل يفسد (ردالمحتار: ١/٣٥٢)

(١٧٧) که یوچاته درکوع یاسجدي په حالت کې یوه پاته شوي سجده ور یادشوه نودی فورا (دستي) سجدي ته ولاړی نواوس دي دهغي رکوع یاسجدي اعاده نه کوي له کومي څخه چې دی سجدي ته تللی وو ولی چې شرط دادی چې له رکن څخه به انتقال مع الطهارة شوی وي اودا شرط دلته موجود دی لهذا اوس دهغې اعاده ضروري نه ده.

(١٧٨) که ترامام شاته صرف یومقتدي وو نودامام له نیت څخه پرته هغه دخلیفه کیدو لپاره متعین دی ولی چې دلمانځه ساتنه په همدي کې ده په تېرشوو صورتونو کې دمزاحمت په وجه سره امام لره دخلیفه معلومول ضروري وو دلته هیڅ مزاحمت نشته امام اول به اودس وکړي په ده پسي به اقتدأ وکړي ولی چې دامام اول دبې اودسه کیدو په وجه سره امامت دده طرف ته راګرځیدلی دی بیانو که په ده کې دامام اهلیت نه وو نودامام لمونځ فاسدیږي.

## بَابُ مَا يُفْسِدُ الصَّلَاةَ وَمَا يُكْرَهُ فِيهَا

داباب دلمانځه دمفسداتو اومکروهاتو په بیان کې دی

ددي باب له ماقبل سره مناسبت دادی چې په ماقبل کې دهغو عوارضوذکر شول کوم چې په لمانځه کې په غیر اختیاري ډول سره پیښیږي اوپه دي باب کې دهغه عوارضو بیان دی کوم چې دلمونځ کونکی په اختیارسره پیښیږي بیایې غیراختیاري عوارض په دي وجه مقدم کړل چې هغه په عارضیت کې کامل دي ولی چې دهغه په دفع کولو باندي بنده قدرت نه لري اوکامل احق بالتقدیم وي.

(١٧٩) يُفْسِدُ الصَّلَاةَ التَّكَلُّمُ (١٨٠) وَالدُّعَاءُ بِمَا يُشْبِهُ كَلَامَنَا (١٨١) وَالْأَنِينُ وَالتَّأَوُّهُ وَارْتِفَاعُ بُكَائِهِ مِنْ وَجَعٍ أَوْ مُصِيبَةٍ لَا مِنْ ذِكْرِ جَنَّةٍ أَوْ نَارٍ (١٨٢) وَالتَّنَحْنُحُ بِلَا عُذْرٍ (١٨٣) وَجَوَابُ عَاطِسٍ بِيَرْحَمُكَ اللهُ (١٨٤) وَفَتْحُهُ عَلَى غَيْرِ إِمَامِهِ (١٨٥) وَالْجَوَابُ بِلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ (١٨٦) وَالسَّلَامُ وَرَدُّهُ

**ترجمة**: لمونځ فاسدوي خبري کول، اوداسي دعاکول کومه چې زموله خبروسره مشابه وي، اوژړل اواوه اوه کول اوپه لوړ اوازسره ژړل ددرد یادیومصیبت له کبله نه دجنت یادوزخ دیادیدلو له کبله. اوغاړي تازه

كول بې له عذره ، او پرنږ كونكي ته په يرحمک الله باندي ځواب وركول، او فتح وركول له خپل امام څخه غيرته ، او ځواب وركول په لااله الاالله باندي ، او سلام اچول او دهغه ځواب وركول.

**تشريح** : (۱۷۹) يعني كه يو چا په خپل لمانځه كې په قصد يا په هيره خبري وكړي نو دده لمونځ فاسديږي ولې چې دحضرت معاوية ابن الحكم رضي الله عنه حديث دي چې ﴿قال ﷺ إنّ هذه الصلاة لا يصلح فيها شيء من كلام الناس وانما هي التسبيح والتهليل وقراءة القرآن ﴾ (يعني زموږ په دي لمانځه كې دخلگوله خبرو څخه دشي هم لياقت نشته، داخو فقط تسبيح او تهليل او قرأة دقرآن دی ).

**ف**: دامام شافعي رحمه الله په نزد دخطا او هيري په صورت كې خبري لمونځ نه فاسدوي ﴿لقوله ﷺ رفع عن أمتي الخطأ والنسيان ﴾ (زماله امت څخه خطاء او نسيان پورته شوي دي) احناف ځواب وركوي چې له رفع خطاء ونسيان څخه مطلب دادی چې دخطا او هيري په صورت كې گناه نشته دا نه چې په لمانځه كې فساد نه راځي .

(۱۸۰ ) قوله والدعاء بمايشبه كلامنا اى يفسد الصلوة الدعاء بمايشبه كلامنا . يعني په داسي الفاظو باندي دعاء كول هم لمونځ فاسدوي كوم چې دخلگوله خبروسره تشبيه لري مثلاً داسي شي غوښتل چې دهغه غوښتل له بنده څخه محال نه وي لكه اللهم زوجني فلانة ولې چې دادخلگوله خبروسره تشبيه لري اودكوم شي غوښتل چې له بندگانو څخه محال وي لكه اللهم اغفرلي نو دا له كلام الناس سره تشبيه نلري لهذا په دي سره لمونځ نه فاسديږي .

(۱۸۱ ) قوله والانين اى ويفسد الصلوة الانين ، انين بفتح الهمزة، هغه اواز ته ويل كيږي كوم چې له آه څخه پيدا شي او،تأوه، په معنى د ،أوه، كولوسره دی يعني دلمانځه په حالت كې د درد له كبله څخه آه يا أوه ويلو باندي هم لمونځ فاسديږي همدا شان كه دكوم مصيبت يا درد له كبله داسي وژاړي چې له هغه څخه حروف پيداشي نو هم لمونځ فاسديږي ولې چې په دي كې دجزع فزع اودتأسف اظهار دی كوم چې له كلام الناس څخه دی نوگوا كې مصيبت زده داسي وايي انامصاب فعزوني ، او په كلام الناس سره خولمونځ فاسدی كمامر.هوكه لمونځ كونكي په لمانځه كې دجنت يا دوږخ دياديدو له كبله وژړل نو دده لمونځ نه فاسديږي ولې چې دا دخشوع او عاجزي دزيادت دليل دی او په لمانځه كې خومقصود شی خشوع او عاجزي ده.

**ف**: همدا شان كه كوم مريض دآه ،أوه په در ولو باندي قدرت نه لري نو خاص دده په حق كې دضرورت له كبله داسي آه، أوه دلمانځه مفسد نه بلل كيږي ولې چې په دي وخت كې دا د پرچي (نيږي) او تږوخي په شان دي كمافي شرح التنوير :االالمر يض لايملک نفسه عن انين وتأوه لانه حينئذ كعطاس وسعال وجشاء وتثاوب وان حصل حروف للضرورة(ردالمحتار: ۱/ ۳۵۸)

(۱۸۲ )قوله والتنحنح اى يفسد ايضا التنحنح بلاعذر ، يعني دلمانځه په حالت كې بې ضرورته تږوخل چې له هغه تږوخي څخه حروف پيدا شي دا لمونځ فاسدوي ولې چې داكلام شمارل كيږي اوكه دعذر په وجه سره وو بيالمونځ نه فاسدوي لكه په پرچي (نيږي)چې لمونځ نه فاسديږي كه څه هم له هغه څخه حروف هجاء پيداشي .

ف: بی له عذر څخه په لمانځه کي توخل لمونځ فاسد وي په دې شرط چې په توخلو سره حروف پیداشي اوبې له اظهار څخه دحروفو توخل مکروه دي اومحض دتحسين دصوت لپاره يادامام درهنمايي لپاره يادذي شودلولپاره چې زه په لمانځه کي يم توخل جائزدی كمافی شرح التنویر (والتنحنح) بحرفین (بلاعذر) اماله بان نشأمن طبعه فلا (او) بلا (غرض صحيح) فلو لتحسين صوته اوليهتدى امامه اوللاعلام انه في الصلوة فلا فساد على الصحيح (الدر المختار على هامش ردالمحتار: ۱/۴۵۷، كذافى حاشية الشيخ عبدالحكيم الشاولكوتي الشهيد رحمه الله: ۱/۱۴۰)

(۱۸۳) قوله وجواب عاطس بيرحمک الله ای يفسد الصلوة جواب عاطس بيرحمک الله ،يعنى دچاپه پرچې (نيږي) باندي په يرحمک الله سره په ځواب ورکولوهم لمونځ فاسد يږي ولی چې دا له کلام الناس څخه شمارل کيږي اوهمداشان نبی کريم ﷺ په داسي موقع باندي حضرت معاوية بن الحكم رضي الله عنه ته داسي فرمايلي وو ﴿إنّ هذه الصّلاة لا يصلُحُ فيها شيءٌ من كلامِ النّاس وانما هي التسبيح والتهليل وقراءة القرآن﴾ يعنى زموږ په لمنځونو کې دخلګودخبرو هيڅ لياقت نشته بزموږ لمونځ خو صرف تسبيح تهليل اوقرآة القرآن دی.

(۱۸۴) قوله وفتحه على غير امامه ای يفسد الصلوة فتح المقتدى على غير امامه ،يعني دلمانځه په حالت کې له خپل امام څخه بغير بل لمونځ کونکي ته په غلطي کولو سره فتح ورکول هم لمونځ فاسدوي ولی چې داخوتعليم اوتعلم دی لهذا له کلام الناس څخه دکيدلو په وجه سره لمونځ فاسد وي.

ف: مګر خپل امام ته فتح ورکول لمونځ نه فاسدوي يعني نه دمقتدي لمونځ فاسديږي او نه دامام مګر يوقول شته چې که امام دومره قرآة ويلی ووچې لمونځ پري جائز وو نوبيافتح ورکول لمونځ فاسدوي مګرصحيح خبره داده چې په دي صورت کي هم فتح ورکول لمونځ نه فاسدوي كمافی شرح التنوير (بخلاف فتحه على امامه) فانه لايفسد (مطلقا) لفاتح واخذبكل حال (ردالمحتار: ۱/۴۶۰)

(۱۸۵) قوله والجواب بلااله الا الله ای ويفسد الصلوة الجواب بلااله الا الله ، يعني که دچاپه مخ کې وويل شول چې ،أمع الله اله آخر (ايا له الله سره بل اله شته) ده په ځواب کې وويل لااله الا الله نودطرفينو په نزد په دي ځواب سره دده لمونځ فاسديږي ولی چې داد پرچې (نيږي) والا ته په يرحمک الله سره دځواب ورکولو په شان دی لهذا په دي هم لمونځ فاسديږي.

ف: دامام ابويوسف رحمه الله په نزد په لااله الا الله سره ځواب ورکول لمونځ نه فاسدوي ولی چې دادثناء صيغه ده دلمونځ کونکي په نيت سره نه بدليږي طرفين ځواب ورکوي چې مدار دمتکلم په نيت باندي دی همدا وجه ده چې که لمونځ کونکی ووايي . يابنى اركب معنا ، اوقصد يې خطاب وي نودا مفسد دلمانځه دی.

ف: دطرفينو قول راجح دی كمافی شرح التنوير (وكذا) ای يفسدها (كل ماقصد به الجواب) كان قيل امع الله اله فقال لااله الا الله ..........ولايفسد الكل عندالثاني والصحيح قولهما عملا بقصد المتكلم (ردالمحتار: ۱/۴۵۹)

(۱۸۶) قوله والسلام ورده ای ويفسد الصلوة السلام وردالسلام ،يعنى لمونځ کونکي دلمانځه په حالت کې يوچاته سلام وروا چوی يا يې يوچاته دسلام ځواب ورکړ نودده لمونځ فاسديږي ولی چې داکلام دی اوکلام مفسد دلمانځه دی دمصنف په مطلق ،السلام ،ويلو کې دي طرف ته اشاره ده چې صرف لفظ سلام . مفسد دلمانځه دی که څه هم د ،عليکم ، لفظ نه ووايي.

(۱۸۷) وَافْتِتَاحُ الْعَصْرِ أَوِ التَّطَوُّعِ (۱۸۸) لَا الظُّهْرِ بَعْدَ رَكْعَةِ الظُّهْرِ (۱۸۹) وَقِرَاءَتُهُ مِنْ مُصْحَفٍ (۱۹۰) وَالْأَكْلُ وَالشُّرْبُ (۱۹۱) وَلَوْ نَظَرَ إِلَى مَكْتُوبٍ وَفَهِمَهُ (۱۹۲) أَوْ أَكَلَ مَا بَيْنَ أَسْنَانِهِ (۱۹۳) أَوْ مَرَّ مَارٌّ فِي مَوْضِعِ سُجُودِهِ لَا تَفْسُدُ وَإِنْ أَثِمَ

**ترجمه**: شروع کول دعصر یا نفلو (مفسد دي)، نه په خپله دماپشین په لمانځه دماپشین له یو رکعت اداء کولو څخه وروسته، اودلمونځ کونکي قرأة ویل له قرآن شریف څخه، اودلمونځ کونکي خوراک اوڅښاک ،اوکه یوچاوکتل لیکل شوي شي ته اووي فهموی ،اویایې وخوړی دغابنو دمنځ یو شی، اویاتیرشو یوتیریدونکی دده دسجدي په ځای کې نولمونځ نه فاسدیږي که څه هم دتېریدلو والا ګنهکاریږي.

**تشریح**: یعني که یو چا دماپشین دلمانځه د یورکعت له اداء کولو وروسته دعصر دلمانځه یادنفلو نیت وکړ الله اکبر یې ووایه نودده دماپشین لمونځ فاسد شو ولی چې دده په دې دوهم لمانځه کې شروع کول صحیح شوه لهذا داول لمانځه څخه ووتی اودلمانځه له منځ څخه وتل لمونځ فاسدوي.

(۱۸۸) قوله لاالظهر ای لایفسدها افتتاح الظهر ،یعني که یوچا دماپشین دلمانځه له یورکعت اداء کولو څخه وروسته خپله دماپشین دلمانځه نیت وکړ الله اکبر یې ووایه نودده دماپشین لمونځ نه فاسدیږي ولی چې ده ذداسي لمانځه دشروع کولو نیت وکړ چې په هغه کي دی فی الحاله شروع دی لهذا دده دانیت لغو دی اومخکنی نیت یې پر خپل حال پاتي دی.

**ف**:البته که یې په ژبه سره دنیت تلفظ وکړ نودده مخکنی لمونځ فاسدیږي ولی چې چې په نیت باندې تلفظ کول دخبرو له قبیلي څخه دی چې په هغه سره سابقه لمونځ فاسدیږي کمافی الشامیة:(قوله مطلقا) ای سواء انتقل الی المغایرة او المتحدة لان التلفظ بالنیة کلام مفسد للصلوة الاولی فصح الشروع الثانی (ردالمحتار: ۱/۳۶۱)

(۱۸۹) قوله وقراءته من مصحف ای یفسدها ایضا قرأة المصلی من مصحف . یعني لمونځ کونکي که قرآن مجید ته کتل اوتلاوت یې کوی نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد یې لمونځ فاسددی ولی چې دقرآن مجید راپورته کول اوپه هغه کې کتل اودهغه ورقي اړول عمل کثیر دی لهذا لمونځ یې فاسدیږي اوبل په دې طریقه کې له قرآن مجید څخه زده کړه راځي نولکه څرنګه چې له غیر څخه په لمانځه کې زده کړه کول لمونځ فاسدوي همداشان له قرآن مجید څخه زدکړه هم لمونځ فاسدوي.

**ف**: په عمل کثیر اوقلیل کې دامامانو اختلاف دی دشوافعو په نزد باندې داسي افعال چې هغه له لمانځه څخه نه وي مسلسل درې (۳) ځله کول عمل کثیر دی په کوم سره چې لمونځ فاسدیږي او له دې څخه کم عمل قلیل دی چې هغه مفسد دلمانځه نه دی. له احنافو څخه دعمل کثیر اوقلیل په شان کې مختلف اقوال نقل شوي دي ،یوقول دادی چې هر هغه عمل کثیر ګڼل کیږي کوم چې په دواړولاسونو ترسره کیږي ،یوقول دادی چې په عمل کثیر کې په خپله دلمونځ کونکي رأیه معتبره ده کوم چې لمونځ کونکی کثیر وبولي هغه کثیر دی او کوم چې قلیل وبولي هغه قلیل دی لکن دعامو خلګو لپاره ددې تعین کول مشکل معلومیږي ، یوقول هم هغه دی کوم چې دشوافعو وو ،یوقول دادی چې هرهغه عمل چې دلمانځه له افعالو څخه نه وي اوله هغه څخه مقصد دلمانځه اصلاح هم نه وي اودده دې عمل ته کتونکی شخص په دې باره کې داګمان وکړي چې دی پرلمانځه نه دی ولاړ نوداعمل کثیر دی ،همدا داکثرو مشائخو رأیه ده او همدا قول مفتی به دې کمافی شرح التنویر: وفیه اقوال خمسة اصحها (مالایشک) بسببه (الناظر) من بعید (فی فاعله انه لیس فیها) قال ابن عابدین (قوله وفیه

الوال خمسة اصحها مالايشک الخ) صححه في البدائع وتابعه الزيلعي والولوالجي وفي المحيط انه الاحسن وقال الصدر الشهيد انه الصواب وفي الخانية والخلاصة انه اختيار العامة (ردالمحتار: ١/ ٦٣١)

ف: كه ديوچا دخارش مرض وي او هغه باربار(بيابيا) بدن گروي كه يې هر ځل عليحده لاس نه پورته كوي بلكه په يو ځل لاس پورته كولو سره يې درې(۳) ځله بدن وگر وى نولمونځ يې نه فاسديږي اوكه هغه له يو ځل گر ولو وروسته ديوه ركن په اندازه (درې ځله دسبحان ربى الاعلى په اندازه ) انتظار وكړي بيايې وگروى نو په داشان درې (۳ ) ځله گر ولو سره هم لمونځ نه فاسديږي قال ابن نجيم، والمراد بالتكرار ثلاث متواليات لمافي الخلاصة وان حک ثلاثا في ركن واحد تفسد صلاته هذا اذا رفع يده في كل مرة اما اذا لم يرفع في كل مرة فلاتفسد لانه حک واحد، وهو تقيد غريب تفصيل عجيب ينبغي حفظه (البحر الرائق: ۲/ ۲۰۲)

ليكن مفتي محمود حسن گنگوهي رحمه الله ليكي: كه يې په يوه ركن كې درې(۳) ځله بدن وگروى نو لمونځ دې نه قطع كوي بلكه ددوهم ځل دې بيا ددې لمانځه اعاده وكړي .(فتاوى محموديه: ۶/ ۶۰۲)

حضرت مولانا مفتي رشيد احمد صاحب نورالله مرقده ليكي: په مطلقا درې(۳) ځله گرولو سره لمونځ نه فاسديږي بلكه داهغه وخت مفسد دى چې هر ځل لاس پورته كوي اوكه يې هر ځل لاس نه پورته كاوه بلكه يو ځل يې لاس پورته كړ درى(۳) ځله يې بدن وگر وى نولمونځ يې نه فاسديږي همدا شان كه يې له يو ځل گر ولو وروسته په اندازه دركن (يعنى درې (۳) ځله سبحان ربى الاعلى ) په مقدار توقف وكړي بيايې وگر وي نوداشان درې (۳) ځله گرول هم لمونځ نه فاسدوي ........په بعض عباراتو كې د ثلاث حركات متوالية پرځاى ثلاث حركات فى ركن دى په دې كې دركن څخه مقدارِ ركن مراد دى يعنى په څومره وخت كې چې درې (۳) ځله سبحان ربي الاعلىٰ ويل كيږي ظاهره خبره ده چې په دومره وخت كې كه درې (۳) حركات واقع شي نودامتوالي دي داهم ويلاى شو چې له وحدت دركن سره توالي (پيوستوالى ) هم شرط ده نوپه يوطويل (اوږد) ركن كې درې (۳) حركات داسې واقع كيدل چې اخيري حركت په اندازه دركن وروسته وي نولمونځ نه فاسدوي الخ .(احسن الفتاوى: ۳/ ۴۱۶)

(۱۹۰ ) قوله واكله وشربه اى ويفسد الصلوة اكل المصلي وشربه ،يعني په لمانځه كې دلمونځ كونكي خوراك اوڅښاك هم لمونځ فاسدوي ولى چې خوراک اوڅښاک له لمانځه سره منافي دي بيانو كه په قصد يوشى وخوري ياوڅښي اوكه په هيره په داوړو صورتونو كي لمونځ فاسديږي ولى چې حالت دلمانځه ددې يادونكى دى چې داوخت دخوراک نه دى لهذا هيره په لمانځه كې عذر نه ده په خلاف دروژې ولى چې د روژې حالت يادونكى نه دى لهذا په روژه كې هيره عذر شمارل كيږي .

(۱۹۱ ) كه لمونځ كونكي خپل مخته ليكل شوي شي ته وكتل دهغه معنى يې وفهموله لمونځ يې نه فاسديږي ولى چې لمونځ په عمل كثير سره فاسديږي كوم چې دلته نه دى موجود شوى.

(۱۹۲ ) همدا دول كه يې په غاښونو كې بند كوم شى وخوړى نوهم دده لمونځ نه فاسديږي ولى چې له دې څخه احتراز ممكن نه دى همداوجه ده چې په دې سره روژه نه فاسديږي الاداچې داكثيروي نوبيالمونځ فاسديږي اوپه قليل او كثير كې فاصل دنخود مقدار دى يعين دنخود له اندازې څخه چې كم وي نوقليل دى اوكه دنخود په اندازه يا له دې څخه زيات وي نو كثير شمارل كيږي .

( ۱۹۳ ) همداشان كه دلمونځ كونكي دسجدي پرځاى يو تيريدونكى تيرشو نوپه دي سره هم لمونځ نه فاسديږي﴿ لقوله ﷺ لا يقطع الصلاة شيء وادرءوا ما استطعتم فإنه شيطان ﴾ (يعنى دهيڅ شي تيريدل لمونځ نه قطع كوي څومره چې ممكن وي هغه منع كړئ ولى چې هغه شيطان دى)ليكن دلمونځ كونكي مخته تيريدونكى انسان ګنهګا رګرځي﴿لقوله ﷺ لو علم المار بين يدى المصلى ماذا عليه لوقف ولو اربعين ،﴾(يعني كه دلمونځ كونكي مخته تيريدونكى شخص خبر واى چې پرده څومره ګناه ده نودى به ولاړواى كه څه هم ترڅلوېښتو كلونو اوياورځوپوري واى )، په مسند بزاركي څلويښت كاله په يقين سره ذكر دي كماقال الشيخ الانور في فيض الباري: وفي مسند البزار اربعين سنة بالجزم وفي حديث آخر مائة سنة (فيض الباري: ۸۵/۲)

ف: دسترې په باره كې دحضرت مفتى رشيد احمد صاحب نورالله مرقده يوښه تحقيق نقل كوم ديوسوال په ځواب كې حضرت فرمايلې دي كه په دومره كوچنى مسجدياكوټه ياسراى كې لمونځ اداء كوي چې دهغه ټوله رقبه ۱۶۰۰الاسه (۴۵۱،۳۳۴ مربع ميټر)څخه كمه وي نودلمونځ كونكي مخته تيريدل مطلقا روانه دى كه ليري تيرشي كه نژدې بهرحال ګناه كار دى البته كه په خلاص ميدان كې ۳۳۴،۰ مربع ميټر ياله دي څخه په لوى مسجدكې ياپه لويه كوټه كې ياپه لوى سراى كې لمونځ اداء كوي نودسجدي پرځاى له نظر اچولو څخه چې تركوم ځاى پوري بالطبع نظر رسيږي ترهغه ځاى پوري تيريدل نه دى جائز له دې څخه هاخواته تېريدل جائز دى بنده ددي اندازه ولګوله نودسجدې له ځاى څخه ديوصف په شاوخواشوه لهذادلمونځ كونكى له موضع قيام څخه ددووصفوپه اندازه تقريبااته پوټه (۲،۴۴ميټر)په پريښودلوسره تيريدل جائزدى .(احسن الفتاوى :۴۰۹/۴)

ف:دضرورت پروخت دسترې هم مفتى رشيداحمد صاحب قدس سره مختلف صورتونه ليكلى دي، ديو سوال په ځواب كې فرمايې:چې ستره لږترلږه بايدله يوه لاس څخه لوړه وي .له دي څخه په كم لوړوالى په اكتفاء كې اختلاف دى .راجح قول دادى چې بقدرذراع ستره ميسره نه وي نوله دي څخه كمه هم كافى ده،دضرورت پروخت دسترې څوصورتونه دي، مثلا(۱)كوم داسې شى چې له يوه ذراع څخه لږ لوړوي ، (۲)لكړه وغيره مخته اېښودل كه دريدلى نه شواى (۳)مخته خط كښول ،لكړه اوخط طولاً يعنى دقبلې طرف ته كيدل ډيرښه ده ،كه څه هم عرضاهم جائزده ،(۴)دجانمازياجامې په خپرولوسره پردي لمونځ اداء كول .( كه دوه كسه تيريدل وغواړي نويودې دلمونځ كونكى مخته دده طرفه ته په شاكولو سره ودريږي اودوهم دي تيرشي .بيادي هغه په همدې ډول دلمونځ كونكى مخته ودريږي اواولنى دي تيرشي، (۵) يوقول مصحح داهم دى چې ۳۶۰۰مربع فوټه (۳۳۴،۴۵۱مربع ميټر)ياله دي څخه په لوى مسجداصحراء كې له موضع سجودڅخه هغه خواته تيريدل بدون ستره جائزدى.ديوبل سوال ځواب ليكې :چې كه تيريدونكى خپل دسمال (څادر)څوړندكړي ياخپله لكړه ودروي اودهغې شاته تيرشي نوبظاهرددي له جوازڅخه كوم مانع نشته ،لهذادضرورت پروخت ددي ګنجائش شته ، بالخصوص په داسې حال كې چې عندالبعض دلركې پرڅمكه اچول ياخط كښول هم دسترې لپاره كافى ده،علاوه له دي څخه په مسجدكبيراوصحراء كې له موضع سجودسره دكراهت مروردتخصيص قول هم مصحح دى ، دضرورت پروخت پردې دعمل كولو ګنجائش شته .(احسن الفتاوى :۴۱۰/۳)

(۱۹۴) وکره عبثه بثوبه وبدنه (۱۹۵) وقلب الحصی الا للسجود مرة (۱۹۶) وفرقعة الاصابع (۱۹۷) والتخصر (۱۹۸) والالتفات (۱۹۹) والاقعاء والافتراش ذراعیه (۲۰۰) ورد السلام بیده

**ترجمه**: او مکروه ده دلمونځ کونکی بازی کول پر خپله جامه یا بدن باندي، او دبري لیري کول مګر د سجدي لپاره یو ځل (مکروه نه دی)، او دګوتو ټکان ایستل، او پر بغلو لاس نونیول، او دلته هلته کتل، او دواړه بازوګان خپرول، او دسلام ځواب ورکول په لاس سره.)

**تشریح**: کله چي مصنف رحمه الله له مفسدات صلوة څخه فارغ شو نو په مکروهات صلوة یې شروع وکړه ولی چي مفسدات او مکروهات دواړه له عوارضو څخه دي بیا مفسدات ځکه چي له مکروهاتو څخه قوي دي په دي وجه یې مفسدات مقدم ذکر کړل.

(۱۹۴) یعنی دلمونځ کونکی پر خپله جامه او بدن باندي بازی کول مکروه تحریمي ده «لان النبی ﷺ قال ان الله کره لکم ثلاثا العبث فی الصلوة والرفث فی الصیام والضحک فی المقابر» (یعنی نبی کریم ﷺ فرمایلي چي الله تعالی ستاسي لپاره دري شیان مکروه کړي دي یو په لمانځه کي بازی کول دوهم دروژي په حالت کي بدی خبري کول دریم په قبرستان (هدیره) کي خندل). له عبث څخه مراد هر هغه کار دی چي په هغه کي څه فائده نه وي دلته له عبث څخه هغه فعل مراد دی کوم چي له افعال صلوة څخه نه وي.

(۱۹۵) قوله وقلب الحصی ای وکره قلب الحصی، یعنی دلمانځه په حالت کي لمونځ کونکی لره دډبرو لیري کول هم مکروه تحریمي دی ولی چي دا هم یو قسم فعل عبث دی، هو که چاده ډبرو په وجه سره سمه سجده نه شوای کولی نو یو ځل دلیري کولو اجازه شته ولی چي نبی کریم ﷺ حضرت ابوذر رضی الله عنه ته وفرمایل «مرة یا اباذر والافذر» (یعنی که له موضع سجده څخه یو ځل ډبري لیري کړي نو ددي اجازه شته که نه نو داهم پریږده)، نو که یې یو ځل هم لیري نه کړي بلکه پریږدي نو دا افضله ده.

(۱۹۶) قوله وفرقعة الاصابع ای وکره فرقعة الاصابع، یعنی دلمانځه په حالت کي لمونځ کونکی لره دګوتو ټکان ایستل هم مکروه دي «لماروی علی ابن ابی طالب عن النبی ﷺ لاتفرقع اصابعک وانت فی الصلوة» (یعنی دلمانځه په حالت کي دګوتو ټکان مه باسه)، همدا حکم دتشبیک هم دی یعنی دلمانځه په حالت کي ګوتي یو په بل کي داخلول هم مکروه تحریمي دي ولی چي حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمایي دتشبیک په حالت کي لمونځ اداء کول دهغو خلکو لمونځ دی پر کوم چي دالله تعالی غضب شوی دی.

(۱۹۷) قوله والتخصر ای وکره التخصر، یعنی دلمانځه په حالت کي لمونځ کونکی لره تخصر کول مکروه دی یعنی پر بغل دی لاس نه ایږدي «لحدیث ابی هریرة رضی الله عنه قال نهی رسول الله ﷺ ان یصلی الرجل مختصرا» (ولی چي نبی کریم ﷺ پر بغل دلاس ایښودلو په حالت کي له لمونځ اداء کولو منع فرمایلي ده)، همدا راز دتخصر کولو په صورت کي دمسنون طریقي ترک لازمیږي او ددمتکبرینو خلکو فعل دی په دي وجه هم تحریما مکروه دی.

(۱۹۸) قوله والالتفات ای وکره التفات، یعنی دلمونځ کونکی دي دلمانځه په حالت دغاړي په ګرځولو سره التفات نه کوي «لحدیث انس رضی الله عنه قال ﷺ ایاک والالتفات فی الصلاة فان الالتفات فی الصلاة هلکة» (یعنی په لمانځه کي له التفات څخه ځان وساتئ ولی چي په لمانځه کي التفات هلاکت دی).

ف:صرف دسترګوپه کنجانوسره دلته هلته کتل خلاف اولی اومکروه تنزیهی دی کمافی شرح التنویر: (والالتفات )یصره یکره تنزیها(ردالمحتار: ۱/۴۷۵)،اوپه اختیارسره له قبلې څخه سینه ګرځول مفسدصلوة ده خواه که لږوي اوکه زیات وي اوکه په اختیارسره نه وي نوبقدرېورکن مفسددی له دي څخه کم مفسدنه دی کمافی الشامیة :(قوله بغیرعذر)قال فی البحرفی باب شروط الصلوة والحاصل ان المذهب انه اذاحول صدره فسدت وان کان فی المسجداذاکان من غیرعذر کماعلیه عامة الکتب اه واطلقه فشمل مالوقل اوکثروهذالوباختیاره والافان لبث مقدارر کن فسدت والافلا(ردالمحتار: ۱/۳۶۳)

(۱۹۹)قوله والاقعاء والافتراش ذراعیه ای ویکره الاقعاء والافتراش ذراعیه ،یعنی دلمانځه په حالت کې لمونځ کونکی ره دسپی په شان کښېنستل اوپه سجده کې ددواړوبازوګانوخپرول مکروه دي ﴿لقول ابي ذرنهاني خليلي عن ثلاث أن انقر نقر الديك وأن أقعي اقعاء الكلب وأن أفترش افتراش الثعلب﴾ (یعنی زه زماخلیل ﷺ له دریوشیانوڅخه منع کړم یوداچې دچرګ په شان مښوکه ووهم اودوهم داچې دسپی په شان اقعاء وکړم اودریم داچې لاسونوخپاره کړم دګیدړي په شان )،اقعاء داده چې په خپلوکوناتوکښېنې خپل دواړه ورنونه ودروي اوخپل دواړه زنګنونه له سینې سره یوځای کړی اودواړه لاسونه پرځمکه کښېږدي ،داهم مکروه تحریمی دی.

(۲۰۰)قوله وردالسلام بیده ای ویکره ردالسلام بیده ،یعنی دلمانځه په حالت کې دلاس په اشاره سره دسلام ځواب ورکول مکروه تنزیهی دی ولی چې دامعنی سلام دی ،لیکن که لمونځ کونکی دسلام په نیت سره مصافحه وکړه نودده لمونځ فاسدیږي ولی چې بنیت سلام مصافحه کول عمل کثیردی اوپه عمل کثیرلمونځ فاسدیږي.

ف:له لمونځ کونکی سره خبری کول ،اودلمانځه په حالت کې دسریالاس په اشاره سره ځواب ورکول مکروه نه دی مثلاله لمونځ کونکی څخه پوښتنه وشوه چې ایافلانی شی په فلانی ځای ایښی دی ؟ده دسرپه ښوررولوسره اشاره وکړه چې نعم، یاله لمونځ کونکی څخه پوښتنه وشوه چې څورکعتونه شوي دي ؟ده دلاس دګوتوپه اشاره سره تعدادوښود ،نودده له دي عمل څخه پرلمانځه هیڅ اثرنه پریوځي کمافی الدرالمختار:لابأس بتکلیم المصلی واجابته برأسه ،کمالوطلب منه شئ ،اواری درهما وقیل اجید؟اوماینعم اولا،اوقیل کم صلیتم فاشاربیده انهم صلوار کعتین (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۱/۴۷۶)

(۲۰۱)وَالتَّرَبُّعُ بِلَا عُذْرٍ (۲۰۲)وَعَقْصُ شَعْرِهِ (۲۰۳)وَكَفُّ ثَوْبِهِ (۲۰۴)وَسَدْلُهُ (۲۰۵)وَالتَّثَاؤُبُ (۲۰۶)وَتَغْمِيضُ عَيْنَيْهِ (۲۰۷)وَقِيَامُ الْإِمَامِ لَا سُجُودُهُ فِي الطَّاقِ (۲۰۸)وَانْفِرَادُ الْإِمَامِ عَلَى الدُّكَّانِ وَعَكْسُهُ

ترجمه :اوپه چارزانوکښېنستل بلاعذره (مکروه ده )اودویښتانوچوټۍ جوړول ،اوجامه راټولول ،اوسدل کول، اوارمیږی کښل ،اوسترګې پټول ،اودریدل دامام په محراب کې نه دده سجده کول په محراب کې ،اوتنهاء دامام پرلوړځای دریدل اوددي عکس مکروه دی.

تشریح :(۲۰۱)قوله والتربع بلاعذر ای ویکره التربع بلاعذر ،یعنی لمونځ کونکی ره دلمانځه په حالت کې چارزانو کښېنستل مکروه تنزیهی دی ولی چې په دي ډول کښېنستلوکې دقعده مسنونه ترک لازمیږي، ځینوحضراتوپې وجه دکراهت دابیان کړي ده چې چارزانوکښېنستل دمتکبرینوخلګوعادت دی ،مګر داصحیح نه ده ولی چې دنبی کریم ﷺ اوحضرت عمر ﷺ دواړوپه چارزانوناسته ثابته ده حال داچې نبی کریم ﷺ دمتکبرینوله عاداتوڅخه منزه دی.

(۲۰۲) قوله وعقص شعره ای ویکره عقص شعره ،یعنی دلمونځ کونکی په داسې حال کې لمونځ کول مکروه تحریمي دی چې معقوص الشعروي یعنی ویښتان یې پرسرباندي یاپرڅټ باندي جمع کړي وي اوپه سربنو سره یې منبلولي وي یایې په تارترلی وي ﴿لماروی ان النبی ﷺ نهی ان یصلی رجل وهو معقوص الشعر﴾ (یعنی مروی ده چې نبی کریم ﷺ منع وفرمایله چې نارینه په دي په داسې حال کې لمونځ اداء کړي چې دی معقوص الشعروي).

(۲۰۳) قوله وکف ثوبه ای ویکره کف ثوبه ،یعنی دلمونځ کونکی خپله جامه راټولول مکروه تحریمی دی لماروی عن ابن عباس ﷺ ﴿ان رسول الله ﷺ قال امرت ان اسجد علی سبع ولااکف الشعر ولاالثیاب﴾ (حضرت ابن عباس ﷺ فرمایې چې نبی کریم ﷺ وفرمایل ماته امرشوی دی چې په ۷اعضاؤ سجده وکړم بزه ویښتان اوجامې راټولې نه کړم )،همداراز په پورته کیدلواوکښته کیدلوکې دجاموپه ټولولوکې یوقسم تکبردی . اودجاموټولول دادی چې کله لمونځ کونکی دسجدي کولواراده وکړي نوله خپل مخته طرف یاشاله طرف څخه جامې راپورته کړي .

(۲۰۴) قوله وسدله ای ویکره سدل الثوب ،یعنی لمونځ کونکی لره دلمانځه په حالت کې خپله جامه ځوړندول مکروه تحریمي ده ولې چې حضرت ابوهریره ﷺ راوی دی ﴿ان رسول الله ﷺ نهی عن السدل فی الصلوة وان یغطی الرجل فاه﴾ (یعنی نبی کریم ﷺ دلمانځه په حالت کې له سدل اوخولې پټولو څخه منع فرمایلې ده ).سدل دادی چې لمونځ کونکی جامه پرخپل سریااوږوباندي واچوي اودهغې کناري په خپلوطرفونو ځوړند پریږدي .داخودڅادرپه باره کې دی اوپه جبه(چپنه )وغیره کې سدل دادی چې جبه پراوږوواچوي اولاسونه دهغې په لستونوکې دننه نه کړي.

ف:دمحنت (کارکولو)په داسې جاموکې لمونځ کول مکروه تنزیهی دی په کوموکې چې عامومجالسوته په تللوکې خلک عار(شرم)محسوسوي په دي شرط چې له دي جاموڅخه علاوه له ده سره نوري جامې هم وي ،همداحکم په مسجدکې داینبودل شویودپوزی اوپلاسټک دخولویودی کمافی شرح التنویر:(وصلاته فی ثیابه بذلة)یلبسهافی بیته (ومهنة)ای خدمة ان له غیرها والا لا،وقال ابن عابدین:قال فی البحر وفسرهافی شرح الوقایة بمایلبسه فی بیته ولایذهب به الی الاکابر والظاهر ان الکراهة تنزیهیة(ردالمحتار: )

ف:په کوموعلاقوکې چې دپګړی نه ترل خلک شنیع بولي هلته بغیرله پګړی لمونځ کول اوورکول مکروه دی کماقال الشیخ الانورقدس سره :والمحقق عندی انها تکره فی البلادالتی تعتشنامحترمابخلاف البلادالتی لااعتبارلها بهاولااعتدادفلاتکون مکروهة (فیض الباری: ۸/۱).حضرت تهانوی رحمه الله لیکي :که کوم کس بغیرله پګړی څخه له کوره نه راوځي نودي کس لره په خپله بغیرله عمامې لمونځ کول مکروه دی خواه که امام وي یانه وي.(امدادالفتاوی :۲۵۶/۱)

ف:له عمامې (پګړی )ترلوسره لمونځ کول موجب ثواب دی اوپرخولی باندي ددسمال وغیره په ترلوسره دعمامې فضلیت نه حاصلیږي ترڅوچې دسنت موافق عمامه نه وي دسنت مطابق عمامې مقداراوه ۷لاسه دی اوبعض اوقات دولس۱۲لاسه عمامه هم له نبی کریم ﷺ څخه ثابته ده.(محمودیه :۴۵/۶)،وعمدة الرعایة علی هامش شرح الوقایة:۱۹۹/۱)

(۲۰۵)قوله والتثاؤب ای ویکره التثاؤب ،یعني لمونځ کونکی لره دلمانځه په حالت کښ ارمیږی کول مکروه دی ولی چې دادستي علامه ده ﴿وقال ﷺ التثاؤب في الصلوة من الشيطان فاذاتثاؤب احدكم فليكظم مااستطاع﴾ حضرت ابوهريرة ﷺ فرمايي چې نبی کريم ﷺ وفرمايل به لمانځه کې ارمیږی کول له شیطان څخه دي نو کله چې ارمیږي راسي په تاسې کې يو ته نوخوله بنده کړئ ترکومه چې ستاسې طاقت وي).

ف:بیاکه ممکنه وه نودخولې دبندساتلولپاره دېښوندي په غاښوکښیکاږي اوکه په دي ډول خوله بنده نه شوی پاته کیدای نولاس دي پرخوله کښیږدي یادي په لستوڼی سره خوله بنده کړي بلاعذره په لاس یالستوڼی خوله بندول مکروه دی کمافی الشامية :والحق باليد الكم وهذااذالم يمكنه كظمه ای رده وحبسه فقدصرح في الخلاصة بان ان امكنه عندالتثاؤب ان ياخذشفته بسنه فلم يفعل وغطى فاه بيده او بثوبه يكره كذاروى عن ابي حنيفة(ردالمحتار: ۱.۴۷۷)

ف:ارمیږی کول که طبعاوونوپه دي کې څخه مضائقه نشته اوکه عمداوي نودامکروه تحریمی دی ، اوقول راجع دادی چې دارمیږی په وخت دي دخولې بندولولپاره دکیڼ لاس ورغوی استعمال کړي ،لانه لدفع الشيطان ،نودادفع خبث په شان دی لهذاددي لپاره کیڼ لاس اولی دی ،البته دقیام په حالت کې څرنګه چې دکیڼ لاس په استعمال سره عمل کثیرلازمیږي لهذادقیام په حالت کې دي ښي لاس استعمال شي کمافی الشامية :ثم في المجتبى :يغطى فاه بيمينه وقيل بيمينه في القيام وفي غيره بيساره .قلت ووجه القيل اظهر ولانه لدفع الشيطان كمامر فهو كازالة الخبث وهي باليساراولى لكن في حالة القيام لماكان يلزم من دفعه باليساركثرة العمل بتحريك اليدين كانت اليمين اولى، وقدمنافي آداب الصلوة عن الضياء ان بظهر اليسرى .........واماالتثاؤب نفسه فان نشامن طبيعته بلاصنعه فلاباس ,وان تعمدينبغي أن يكره تحريمالانه عبث وقدمران العبث مكروه تحريمافي الصلوة وتنزيهاخارجها(الشامية: ۱/۴۷۷)

(۲۰۶)قوله وتغميض عينه ای ویکره تغميض عينه ،یعني لمونځ کونکی لره دلمانځه په حالت کې سترګې پټول مکروه تنزيهی دی ولی له دي څخه منع شوي ده ﴿قال ﷺ اذاقام احدكم الى الصلوة فلايغمض عينه﴾ (یعني کله چې له تاسې څخه کوم یولمانځه ته ولاړشي نوسترګې دي نه پټوي )،همداراز په لمانځه کې دهرعضوعبادت متعین دی دسترګوعبادت دادی چې دقیام په حالت کې دي دسجدي ځای ته ګوري ،او په حالت قعودکې دي سینې ته ګوري حال داچې دسترګوپه پټولوکې ددي عبادت ترک لازمیږي.

(۲۰۷)قوله وقيام الامام لاسجوده في الطاق ای ویکره قيام الامام في الطاق ولايكره سجوده فيه اذاكان قائماخارج المحراب.

یعني صرف دامام په محراب کې دریدل مکروه تنزيهی دی ولی چې صرف دامام لپاره دمخصوص ځای انتخاب کول داهل کتابو عمل دی نوله اهل کتابو سره دتشبيه په وجه سره مکروه دی ،البته که امام له محراب څخه دباندي ولاړوي صرف سجده په محراب کې کوي نودامکروه نه دی ولی چې اعتبارپښولره دی، لیکن که دعذرپه اساس مثلاً دځای دتنګوالی په وجه امام په محراب کې ودریږي نومکروه نه دی.

(۲۰۸)قوله وانفراد الامام على الدكان ای ویکره انفراد الامام على الدكان ،یعني صرف دامام په لوړځای دریدل مکروه دی حال داچې مقتدیان ټول کښته وي ولی چې په دي کې له اهل کتابو سره تشبه ده چې اهل کتاب دخپل امام لپاره دمخصوص ځای انتخاب کوي ،ځینې حضراتوبې داوجه بیان کړي ده چې په دي صورت کې ددواړوطرفونو پرمقتدیانو دامام حالت مشتبه کیږي ،اوددي عکس هم مکروه دی یعني چې مقتدیان

تول په لوړځاى وي اوپواځې امام کښته وي ولې چې په دي کې دامام تحقيردى ،البته که له امام سره ځه خلګ هم وي نوبيا کراهت نشته ،دعلامه شامي رحمه الله درأى مطابق داکراهت تنزيهي دى.

ف:دلوړوالي څومره مقداردلته معتبردى ؟نوپه دي سلسله کې له احنافوڅخه څواقوال منقول دي امام طحاوى رحمه الله فرمايي چې دمتوسط(درميانه )انسان دقدپه برابري لوړوالي وي نومکروه دى اوکه له دي څخه کم وونومکروه نه دى، اوځينى وايي چې که ديوذراع (ګز)په اندازه لوړوالي ووبيامکروه ده اوکه له دي څخه کم وي نوکراهت نشته دي دويم قول والا په ستري قياس کړى دى ،دځينوپه نزددومره اندازه لوړځاى وي چې په هغه سره په امام اومقتديانوکې امتيازثابت شي.

(٢٠٩)وَلُبْسُ ثَوْبٍ فِيهِ تَصَاوِيرُ (٢١٠)وَأَنْ يَكُونَ فَوْقَ رَأْسِهِ أَوْ بَيْنَ يَدَيْهِ أَوْ بِحِذَائِهِ صُورَةٌ إلَّا أَنْ تَكُونَ صَغِيرَةً أَوْ مَقْطُوعَةَ الرَّأْسِ أَوْ لِغَيْرِ ذِي رُوحٍ (٢١١)وَعَدُّ الْآيِ وَالتَّسْبِيحِ (٢١٢)لَا قَتْلُ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ (٢١٣)وَالصَّلَاةُ إلَى ظَهْرِ قَاعِدٍ يَتَحَدَّثُ (٢١٤)وَإِلَى مُصْحَفٍ أَوْ سَيْفٍ مُعَلَّقٍ أَوْ شَمْعٍ أَوْ سِرَاجٍ (٢١٥)وَعَلَى بِسَاطٍ فِيهِ تَصَاوِيرُ إنْ لَمْ يَسْجُدْ عَلَيْهَا

**توجمه**:اوداسې جامه په تن کول (مکروه ده )چې په هغې کې تصويرونه وي ،اوداچې وي دده پرسريادده مخته يادده په برابري کې کوم تصويرمګرداچې ډيرکوچنى وي يايې سرپرې وي يادغيرذى روح تصويروي ،اوشمارل دآيتونو او تسبيحاتو ،نه دماراولړم وژل ،اولمونځ کول دناست خبري کونکى کس شاته ،اودقرآن مجيدطرف ته يا دځوړندي توري طرف ته يادشمع طرف ته يادڅراغ طرف ته ،او پر داسې مصلى باندي چې په هغې کې تصويرونه وي که يې سجده نه کوله پرتصويرونوباندي.

**تشريح** :(٢٠٩)قوله ولبس ثوب فيه تصاوير اى ويکره لبس ثوب فيه تصاوير ،يعنى دلمونځ کونکى داسې جامه په تن کول مکروه ده چې په هغې کې دذى روح تصويرونه وي په دي شرط چې هغه دومره لوي چې پرڅمکه په اينبودلوسره که دقيام په حالت کې هغه ته وګوري نودهغه اعضاء ښه ښکاريږي ولې چې داله حامل صنم سره مشابهت دى لهذادامکروه دي.

ف:که له تصويرسره لمونځ نه کوي بياهم دتصويرونوجوړول ،اوساتل مکروه دي امام نووى رحمه الله دتصويرپه حرمت باندي اجماع نقل کړي ده﴿لقوله ﷺ اشدالناس عذابايوم القيامة المصوررون ويقال لهم احيوا ما خلقتم﴾(يعنى په خلګوکې ترټولو زيات عذاب به په ورځ دقيامت دتصويرجوړونکووي دوئ ته به وويل شي ژوندئ کړئ کوم چې تاسې جوړکړي وو).

(٢١٠)قوله وان يکون فوق راسه او بين يديه اى ويکره ان يکون التصوير فوق راس المصلى او بين يديه ،يعنى دلمونځ کونکى پرسريامخته ياپه برابري کې دکوم تصويرموجودوالي مکروه دى ولې چې دادي تصويرله عبادت سره مشابهت دى، همدرازپه حديث شريف کې دي ،جبرئيل عليه السلام فرمايي موږ هغه کورته نه داخليږوپه کوم کې چې سپى وي ياتصويروي.

ف:البته که تصويربالکل کوچنى وي چې په ځمکه په اينبودلوسره دقيام په حالت کې هغه ته وګوي نودهغه اعضاء نه ښکاريږي يامقطوع الرأس وي يادکوم غيرذى روح تصويروي نومکروه نه دى ولې چې دداسې تصويرونوعبادت نه کيږي لهذاداسې تصويرونه دبت په حکم کې نه دي کما فى شرح التنوير:(او کانت صغيرة) لاتتبين

تفاصيل عضالها للناظر فانما وهي على الارض ذكره الحلبي (او مقطوعة الراس او الوجه) او ممحوة عضو لاتعيش بدونه (او لغير ذي روح لا) يكره لانها لاتعبد (ردالمحتار: ۱/۴۷۹)

(۲۱۱) قوله وعد الآي اي ويكره ايضا عد الآي، يعني لمونځ کونکی لره په لمانځه کښ دآيتونو يا تسبيحاتو په گوتو شمارل مکروه دي ولی چې داله اعمال صلوة څخه نه دی، په غيرظاهرالرواية کښ له صاحبينو څخه مروی دی چې په لاسونو دآيتونو په شمارلو کښ څه حرج نشته ولی چې دمسنون قرأة درعايت ساتلو لپاره کله پرلاسونو دآيتونو دشميرلو ضرورت وي.

ف: اختلاف په گوتو باندي دآيتونو په شمارلو کښ دی که صرف دگوتو سرونه کښيښل شي يا يې په زړه کښ يادوساتي نوبيا بالاتفاق مکروه نه دی کمافي العناية وفتح القدير: ثم محل الخلاف فيما عدبالاصابع او بخيطه يمسكه اما اذا احصى بقلبه او غمز بالانامه فلا كراهة (فتح القدير: ۱/۳۶۵)

ف: دابوداؤدشريف له يوه حديث څخه په ډبرووغيره دتسبيحاتو ويلو جواز ثابتيږي حضرت سعدابن ابی وقاص ﷺ فرمايي انه دخل مع رسول الله ﷺ على امراة وبين يديها نوى او حصى تسبح به (چې زه له نبی کريم ﷺ يوي ښځي ته ورغلم دهغې مخته ډبري يادخرمازني پراته وواوهغې پردي تسبيح ويل)، پرهمدي باندي علماؤ سبحه مروجه (تسبيح) قياس کړي دي په دواړکښ فرق صرف دمنظوم (پيلو) او غيرمنظوم دی له کوم څخه چې پرجواز څه اثرنه پريوځي حال دا چې په منظوم کښ اسانې هم ډيره ده، بلکه په ځينې رواياتو کښ ددي ترغيب راغلی دی له حضرت علی ﷺ څخه مرفوع روايت دی، نعم المذكر السبحة، البته دغاړگی په څيرپه غاړه کښ اچول يادبنگړوپه څيرپرلاس پيچل يادخبروپه دوران کښ اړول ياله معتاد طريقې څخه جلاډيري غټي تسبيح (تسپې) جوړول وغيره امور څرنگه چې دشهرت طلبی شيان دي په دي وجه داطريقه غلطه او بدعت ده.

(۲۱۲) قوله لاقتل الحية والعقرب اي لايكره قتل الحية او العقرب، يعنی په لمانځه کښ په لږعمل سره دمار اولړم وژل مکروه نه دي لحديث ابی هريرة ﷺ قال امر رسول الله ﷺ بقتل الأسودين في الصلاة ٠ (له حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چې نبی کريم ﷺ دلمانځه په حالت کښ دمار اولړم دوژولو حکم کړی دی). همدارنګه دي کښ دزړه مشغولونکی لامل دفع کيږي کوم چې له اصلاح لمانځه څخه دی، دځينو حضرات رأيه داده چې که له دوئ څخه دضرر انديښنه وي نو ددوئ وژل مکروه نه دی که نه نو مکروه دی.

(۱۱۳) قوله والصلوة الى ظهر قاعد يتحدث اي ولاتكره الصلوة الى ظهر قاعد يتحدث، يعنی دداسې کس شاته لمونځ کول مکروه نه دي کوم چې ناست وي او سوکه سوکه خبري کوي ولی مروی ده چې بعض صحابه کرامو ﷺ به تلاوت کاوو، او بعضو به علمی مذاکره کوله، او بعضو به لمونځ کاوو نبی کريم ﷺ به دوئ نه منع کول نوکه مکروه وای نو نبی کريم ﷺ به ضرور دوئ منع کولای، مګرشرط دادی چې دمخته کس مخ به دلمونځ کونکی طرف ته نه وي او په لوړ اواز سره به خبري نه کوي چې لمونځ کونکی په تشويش کښ ولويږي که نه نو بيا مکروه دی.

(۲۱۴) قوله والى مصحف او سيف معلق او شمع او سراج اي لاتكره الصلوة الى مصحف او سيف معلق او شمع او سراج، يعنی دقران مجيد طرف ته يادځوړندي توري طرف ته يادموم بتی طرف ته يادڅراغ طرف ته لمونځ اداء کول

مکروه نه دي ولې چې ددې شيانو عبادت نه کيږي حال داچې کراهت دداسې شيانو طرف ته په لمانځه ادا، کولو کې دی دکوموچې عبادت کيږي .

(۲۱۵)قوله اوعلى بساط فيه تصاوير ان لم يسجد عليها اى لاتكره الصلوة على بساط فيه تصاوير ان لم يسجد عليها يعنى په داسې فرش لمونځ اداء کول مکروه نه دی چې په هغه کې تصويرونه وي ولې چې دفرش تصويرونه تر پښولاندې کيږي لهذا په دې کې دتصوير تعظيم نه توهين دی ،په دې شرط چې دسجدې پرځای نه وي که نه نو مکروه دی ولې چې دسجدې په ځای دکيدلوپه صورت کې له بت پرستانوسره مشابهت لازميږي اودبت پرستانو مشابهت مکروه دی .

## فصل

کله چې مصنف رحمه الله دهغوامورو له بيان څخه فارغ شوکوم چې په لمانځه کې مکروه دي نوېې دخارج صلوة مکروه امورو په بيان شروع وکړه په دواړو قسمونو کې دفرق کولو لپاره يې دفصل عنوان ورکړ.

(۲۱۶)کره استقبال القبلة بالفرج في الخلاء واستدبارها(۲۱۷)وَغَلْقُ بَابِ الْمَسْجِدِ(۲۱۸)وَالْوَطْءُ فَوْقَهُ وَالْبَوْلُ وَالتَّخَلِّي(۲۱۹)لَا فَوْقَ بَيْتٍ فِيهِ مَسْجِدٌ(۲۲۰)وَلَا نَقْشُهُ بِالْجِصِّ وَمَاءِ الذَّهَبِ

**ترجمه** :مکروه ده دقبلې طرف ته مخ گرځول دقضاء حاجت په وخت کې اوددې طرف ته شاگرځول ، اوبندول دمسجد ددروازې، اووطی کول پرمسجد بالا، اوبولې اوپاخانه کول ،نه دداسې کورپرسر چې په هغه کې مسجدوي ،اونه منقش کول دمسجد په گچو اودسروزرو په اوبو باندې .

**تشريح** :(۲۱۶)دپاخانې اوبولو کولو پروخت دقبلې طرف ته مخ گرځول ياشاگرځول مکروه دي خواه که په آبادۍ کې وي اوکه په ځنګل کې وي﴿لحديث ابى ايوب الانصارى رضي الله عنه قال قال صلى الله عليه وسلم اذااتيتم الغائط فلاتستقبلوا القبلة بغائط ولابول ولاتستدبروها﴾ (حضرت ابوايوب انصارى رضي الله عنه فرمايي چې نبى کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل کله چې تاسې قضائ حاجت ته ولاړشي نو دقبلې طرف ته مخ مه گرځوئ اومه دقبلې طرف ته شاگرځوئ ).

ف:دامام شافعى رحمه الله په نزدکه دقبلې اوبولې کونکی ترمنځ حائل(پرده )وي وي نوبيامکروه نه ده ﴿لحديث عبدالله بن عمر رضي الله عنه قال ارتقيت على ظهر بيتنا فرأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم على لبنتين مستقبل بيت المقدس لحاجة﴾ (يعنى يوه ورځ زه دخپل کورپربام وختلم نومانبى کريم صلى الله عليه وسلم وليدی چې دی صلى الله عليه وسلم پردوخښتو دقضاء حاجت لپاره ناست وواودبيت المقدس طرف ته يې مخ گرځولی وو)اوپه مدينه منوره کې دبيت المقدس طرف ته په مخ گرځولوسره شادبيت الله طرف کيږي ،احناف ځواب ورکوي چې دحضرت ابوايوب انصارى رضي الله عنه حديث قولی دی اودحضرت ابن عمر رضي الله عنه حديث فعلى دی اوقاعده ده چې چيرته په قولی اوفعلى حديث کې تعارض راشي نوترجيح قولی حديث ته حاصله وي ،همداراز که چيرته دحرمت اواباحت دواړوارخونه موجودوي نوترجيح به حرمت ته ورکول کيږي .

(۲۱۷)قوله وغلق باب المسجد اى ويكره غلق باب المسجد ،يعنى دمسجد دروازه مقفل کول (بندول ) مکروه دی ولې چې داله لمانځه څخه دمنع کونکی سره مشابهت دی ،دځينوحضراتورأيه داده چې که

دمسجد دسامان دحفاظت لپاره دلمانځه له وختونو څخه علاوه په نوروو ختونو کې بنده شي نومکروه نه ده په دي زمانه کې دغلو دکثرت په وجه سره همداقول مفتى به کرځول شوى دى .

(۲۱۸)قوله والوطى فوقه والبول والتخلى اى ويكره الوطئ فوق المسجدوالبول والتخلى ،يعني دمسجدپربام باندي صحبت كول ياپاخانه كول ،يابولې كول مكروه دي ولى چې دمسجدبام هم دمسجدپه حكم کې دى همداوجه ده چې که امام كښته وي لورپربام دده اقتداء كول صحيح ده اودمعتكف اعتكاف په لورختلوسره نه باطليږي.

(۲۱۹)قوله لافوق بيت الخ اى لايكره الوطئ والبول والتخلى فوق بيت فيه مسجد،يعني دكوردمسجدپربام باندي صحبت وغيره كول مكروه نه دي دكورله مسجدڅخه مرادهغه ځاى دى كوم چې دلمانځه لپاره متعين شوى وي ولى چې دادباقاعده مسجدپه حكم کې نه دى ،همداوجه ده چې دي ته دجنب اوحائضې دخول جائزدى .

(۲۲۰)قوله ولانقشه بالجص وماء الذهب اى لايكره نقش المسجدبالجص وماء الذهب ،يعني مسجدپه چونه اودسرورزروپه اوبو سره منقش كول مكروه نه دى ،په دي قسم وينا کې چې مكروه نه دى ،اشاره ده چې په دي کې ثواب نشته﴿لقوله ﷺ من اشراط الساعة تزيين المساجد﴾ (دقيامت له علاماتوڅخه دمسجدونومزين كول دي )،ځينې حضرات دامكروه بولي اوځينورأيه داده چې دادثواب كاردى ولى چې په دي کې دمساجدوتعظيم دى په دي شرط چې څوک په خپل مال سره داكاروكړي اوكه دوقف په مال سره چونه وغيره وكړي نومتولى به دددي ضامن وي .

## بَابُ الْوِتْرِ وَالنَّوَافِلِ

دا باب دوترواونوافلوپه بيان کې دى

كله چې مصنف رحمه الله له فرائضواودهغو له متعلقاتواوله آدابوڅخه فارغ شو ،نودنوافلوپه بيان يې شروع وكړه، نوافل ئى په دي وجه له فرضوروسته ذكر كړل چې نوافل دفرضو له متمماتواومكملاتو څخه دي اودمتمم درجه وروسته وي، او بياد نفلو اووترو په يوه باب کې د يوځاى كولو وجه داده چې وتر دصاحبينواوامام شافعي رحمه الله په نزد دنفلوپه څير دي.

(۲۲)اَلْوِتْرُ وَاجِبٌ(۲۲۲)وَهُوَ ثَلَاثُ رَكَعَاتٍ بِتَسْلِيمَةٍ(۲۲۳)وَقَنَتَ فِي ثَالِثَتِهِ قَبْلَ الرُّكُوعِ أَبَدًا بَعْدَ أَنْ كَبَّرَ(۲۲۴)وَقَرَأَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ مِنْهُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُورَةً(۲۲۵)وَلَا يَقْنُتُ لِغَيْرِهِ(۲۲۶)وَيَتْبَعُ الْمُؤْتَمُّ قَانِتَ الْوِتْرِ لَا الْفَجْرِ

**ترجمه**:وترواجب دي ،اوهغه دري ركعته دي په يوه سلام سره ،اودعاء قنوت دي وايي په دريم ركعت کې هميشه له ركوع څخه وړاندي له تكبيرويلوڅخه وروسته ،اووايي دي دوترو په هر ركعت کې فاتحه اوسورت، اودعاء قنوت دي نه وايي له وتروڅخه په ماسوا کې ،اواتباع دي كوي مقتدى دقنوت وترد ويونكي نه دقنوت فجرد ويونكي .

**تشريح** :(۲۲۱)دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدوترواجب دي ولى چې له حضرت عبدالله بن بريده رضي الله عنه څخه منقول دي چې نبى كريم ﷺ دري ځله ارشادوفرمايو﴿الوتر حق فمن لم يوتر فليس منا﴾(وترحق دي څوک چې

وتراداء نه كړي هغه له موږڅخه نه دى)،همدراز دحضرت ابوسعيدخدري ﷺ حديث دى ﴿انه ﷺ قال اوتروا قبل ان تصبحوا﴾ (يعنى نبى كريم ﷺ وفرمايل وتراداء كړئ له سهارڅخه وړاندي )اوتروا،امردى او امرودوجوب لپاره دى همدا وجه ده چي بالاتفاق دوترو قضاء واجب ده.

ف:دصاحبينورحمهما الله تعالى په نزدسنت دي ولى چي په وتروكي دسنت والى اثارشته هغه داچي منكريي كافرنه دى . اوددوئ لپاره اذان اواقامت نه كيږي ،اوله حضرت ابن عمر ﷺ څخه په سورلى باندي دوترواداء كول ثابت دي حال داچي فرائض پرسورلى بغيرله عذرڅخه جائزنه دي .مگرصاحبينوته خواب وركړل شوى دى چي دوترومنكرځكه نه كافركيږي چي دوتروثبوت په سنت غيرمتواتره سره دى،اودوئ لره اذان اواقامت په دي وجه نه كيږي چي وتردماخستن دلمانځه په وخت كي اداء كيږي نوددوئ لپاره دماخستن په اذان اواقامت باندي اكتفاء شوي ده .اوله حضرت ابن عمر ﷺ څخه داهم ثابت دي چي دوترولپاره له سورلى څخه كښته كيدواوفرمايل يي چي نبى كريم ﷺ به همداشان كول، نودحضرت ابن عمر ﷺ په روايتونوكي تعارض دى اوقاعده ده چي اذاتعارض تساقطا.

ف:دوتروپه باره كي له امام ابوحنيفه ﷫ څخه دري روايتونه منقول دي ./نمبر١. وترواجب دي دادده اخيري قول دى اوهمدااصح دى ./نمبر٢.وترسنت دي داقول صاحبينورحمهما الله تعالى اختياركړى دى. /نمبر٣.وترفرض دي داامام زفر ﷫ اختياركړى دى ،بياپه دي دريواقوالوكي په دي دول تطبيق شوي دى،چي وترعملافرض دي اواعتقاداواجب دي اوثبوتاسنت دي .پردي دائمه واتفاق دى چي دوترو منكركافرنه دى ،همداراز وتربغيرله نيت څخه صحيح نه دي بزموږپه نزدوترپه ناسته سره ياپه سورلى دسپرتياپه حالت كي اداء كول صحيح نه دي.

(٢٢٢)بيادا حنافوپه نزددوتروددري ركعتونه په يوه سلام واجب دي ولى چي دحضرت عائشه ﷺ حديث دى چي﴿ان النبى ﷺ كان يوتر بثلاث ركعات﴾ (يعنى نبى كريم ﷺ به وتردري ركعته اداء كول ) همداشان له حضرت ابن عباس ﷺ اوله حضرت ابن مسعود ﷺ څخه هم مروى ده ،همداراز له ابن كعب ﷺ څخه مروى ده چي نبى كريم ﷺ به دري ركعته وتراداء كول په اول ركعت كي به يي سبح اسم ربك الاعلى،اوپه دوهم ركعت كي قل ياايها الكافرون اوپه دريم ركعت كي قل هوالله احدوايواوله ركوع څخه وړاندي به يي دعاء قنوت وايو.

(٢٢٣)بيازموږپه نزدبه په دريم ركعت كي لەركوع څخه وړاندي دعاء قنوت وايي اودامام شافعى ﷫ په نزدبه يي له ركوع څخه وروسته وايي ،زموږدليل ماروى ان ابن مسعود ﷺ بعث امه لترقب وتر رسول ﷺ فذكرت له انه اوتر بثلاث ركعات ......وقنت قبل الركوع (يعنى دحضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ مينځي ده ﷺ ته دنبى كريم ﷺ دوتروپه باره كي وويل چي نبى كريم ﷺ وتردري ركعته اداء كړل ....اوله ركوع څخه وړاندي يي قنوت ووايو ).

ف:زموږپه نزدپوره كال دعاء قنوت ويل واجب دي اودامام شافعى ﷫ په نزدصرف درمضان په نصف اخيركي دعاء قنوت وايي ،زموږدليل ﴿قوله ﷺ للحسن حين علمه دعاء القنوت اجعل هذافى وترك﴾ (يعنى نبى كريم

رضي الله عنه حسن ابن علی رضي الله عنه ته چې کله دعاء قنوت وروښود نووي فرمايل چې دا په خپلو وترو کې وايه) په دي کې درمضان او غير رمضان هيڅ تفريق نشته لهذا پوره کال دعاء قنوت ويل ثابت شو.

ف:په دعاء قنوت کې دائمه واختلاف دی چې په لوړ اواز سره په يې وايي او که سو که، دځينو حضراتو په نزد که امام وي نو په لوړ اواز سره دي وايي ولی چې دعاء قنوت له قرأة سره مشابه دی حال دا چې نور ځيني حضرات فرمايي چې سو که دي وايي ولی چې دا دعاء ده او په دعاء کې سنت اخفاء ده همدا قول اصح دی كمافي شرح التنوير:(مخافتا على الاصح مطلقا) ولو اماما لحديث خير الدعاء الخفي (ردالمحتار: ۱/۴۹۳)

او وتر اداء کونکی چې کله په دريم رکعت کې د دعاء قنوت د ويلو اراده وکړي نو تکبير دي ووايي او خپل دواړه لاسونه دي ترغوږو پورې لوړ کړي بيا دي دعاء قنوت ووايي ﴿لقوله ﷺ لاترفع الايدى الافى سبع مواطن وذكر منها القنوت﴾ (نه دي پورته کيږي لاسونه مګر په اووځايونو کې او له هغو څخه يې قنوت ذکر کړ) او په لمانځه کې دننه د لاسونو پورته کول بغير له تکبير څخه مشروع نه ده نو له دي څخه د تکبير ويل هم ثابت شو.

ف:دوترو په اخيري رکعت کومه يوه دعاء چې هم وايي جائزه ده مګر سنت دا دی چې مشهوره دعاء ووايي د کومې چې الفاظ دا دي اللهم انا نستعينك ونستهديك ونستغفرك ونتوب اليك ونؤمن بك ونتوكل عليك ونثني عليك الخير كله ونشكرك ولانكفرك ونخلع ونترك من يفجرك اللهم اياك نعبد ولك نصلي ونسجد واليك نسعى ونحفد نرجو رحمتك ونخشى عذابك ان عذابك بالكفار ملحق- کچيرته ديو چا دغه دعاء ياده نه وی بيا دی دغه دعاء ربنا آتنا في الدنيا حسنة وفي الآخرة حسنة وقنا عذاب النار- وايی كمافي الشامية:ومن لايحسن القنوت يقول ربنا آتنا في الدنيا حسنة الآية وقال ابويوسف رحمه الله يقول اللهم اغفرلي يكررها ثلاثا:(ردالمحتار: ۱/۴۹۳)

(۲۲۴)داحنافو په نزد له وترو څخه علاوه په کوم بل لمانځه کې دعاء قنوت نشته .دامام شافعي رحمه الله په نزد د فجر په لمانځه کې دعاء قنوت لوستل مسنون دي ﴿لحديث انس رضي الله عنه كان النبي ﷺ يقنت في صلوة الفجر الى ان فارق الدنيا﴾ (يعني نبي ﷺ دسهار په لمانځه کی قنوت وايو ان تر دی وخته پوری چې له دنيا څخه رخصت شو، داحنافو رحمهم الله دليل دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه حديث دی ﴿ان النبي ﷺ قنت في صلوة الفجر شهرا يدعوا على رعل وذكوان وعصية .......لم تركه﴾ ( يعني نبي ﷺ يوه مياشت دعاء قنوت دسهار په لمانځه کی ووايو دعرب پرقبيلو رعل، ذكوان، عصية، باندى ښيراوي كولي بيا يې پريښودی).

(۲۲۵)يعنی دوترو په هر رکعت کې سورة فاتحه او دکوم بل سورة ويل واجب دي ،دصاحبينو او امام شافعي رحمه الله په نزد خو په دي وجه چې ددوئ په نزد وتر سنت دي او دسنتو په هر رکعت کې قرأة واجب دی .دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد که څه هم وتر واجب دي ليکن څرنګه چې دوترو وجوب په سنت سره ثابت دی او سنت يقين لره مفيدنه وي په دي وجه په وجوب وترو کې يو قسم شبه پيدا شوه نو امام ابوحنيفه رحمه الله احتياطا په هر رکعت کې قرأة واجب وګرځاوو كمافي الدرالمختار: لكنه يقرا في كل ركعت منه فاتحة الكتاب وسورة احتياطا قال ابن عابدين رحمه الله (قوله احتياطا) اى لان الواجب تردد بين السنة والفرض فبالنظر الى الاول تجب القراة في جميعه وبالنظر الى الثاني لا تجب احتياطا (ردالمحتار: ۱/۴۹۲)

(۲۲۶)قوله لاالفجر اى لايتبع المؤتم الامام القانت في الفجر ،داحنافو په نزد څرنګه چې له وترو څخه ماسوا په کوم بل لمانځه کې دعاء قنوت نشته لهذا دوترو په دعاء قنوت کې خو به مقتدی دامام اتباع کوي ليکن که

امام په فجركې دعاء قنوت وايونومقتدي به اتباع نه كوي ولې چې داحنافوپه نزدپه فجركې دعاء قنوت ثابت نه دی.

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزد مطلقاپه فجركې دعاء قنوت ويل مسنون دي نوكه كوم حنفي په شافعي پسې دسهارلمونځ اداء كوونودفجرپه لمانځه كې ددعاء قنوت ويلوپروخت دظاهرروايت مطابق به حنفي پټه خوله دريږي اولاسونه به ايله پريږدي كمافي شرح العزير (لاالفجر)لانه منسوخ (بل ساكتاعلى الاظهر) مرسلا بلهه (درمختارعلى هامش ردالمحتار: ١/٣٩٥)

ف:داحنافوپه نزدكه خدانخواسته پرامت كوم لوى مصيبت راغى نودفجرپه لمانځه كې دعاء قنوت لوستل صحيح دي ولې چې دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه په روايت سره دمصيبت پروخت دفجرپه لمانځه كې دعاء قنوت ثابت دی كوم ته چې قنوت نازله ويل كيږي چې دهغه الفاظ دادي اللهمّ اهدنافيمن هديت وعافنافيمن عافيت وتولنافيمن توليت ,وبارک لنافيمااعطيت, وقناشر ماقضيت ,فانک تقضي ولايقضى عليک وانه لايذل من واليت ولايعز من عاديت ,تبارکت ربناوتعاليت ولامنجامنک الا اليک , نستغفرک ونتوب اليک,وصلى الله على النبي واله وسلم اللهم اغفرلنا وللمؤمنين والمؤمنات والمسلمين والمسلمات , وألف بين قلوبهم, واصلح ذات بينهم وانصرهم على عدوّک وعدوّهم اللهم العن الکفرة الذين يصدون عن سبيلک ويکذبون رسلک ,ويقاتلون اولياءک , اللهم خالف بين کلمتهم, وزلزل اقدامهم, وانزل بهم بأسک الذي لاترده عن القوم المجرمين.

(٢٢٧)وَالسُّنَّةُقَبلَ الفَجرِ وَبَعدَ الظُّهرِ وَالمَغرِبِ وَالعِشَاءِ رَكعَتَانِ وَقَبلَ الظُّهرِ وَالجُمُعَةِ وَبَعدَهَاأَربَعٌ وَنُدِبَ الأَربَعُ قَبلَ العَصرِ وَالعِشَاءِ وَبَعدَهُ وَالسِّتُّ بَعدَ المَغرِبِ

**ترجمه**:اوسنت له فجرڅخه وړاندي اوله ظهر،مغرب اوعشاء څخه وروسته دوه ركعته دي اوله ظهر اوجمعې څخه وړاندي اوله جمعې څخه وروسته څلورركعتونه دي اومستحب دي څلورركعتونه له عصراوعشاء څخه وړاندي اوله عشاء څخه وروسته اوشپږركعتونه له مغرب څخه وروسته.

**تشريح**:(٢٢٧)يعني سنت لمونځونه دادي چې له فجرڅخه وړاندي ،ظهر،مغرب اوله عشاء څخه وروسته دوه ركعتونه دي ،دظهراوجمعې له لمانځه څخه وړاندي څلورڅلورركعتونه دي اودجمعې له لمانځه څخه وروسته هم څلورركعتونه دي ،دعصراوعشاء له لمانځه څخه وړاندي څلورركعته مندوب دي اوله عشاء څخه وروسته څلورركعته دي اوله مغرب څخه وروسته شپږركعتونه دي دليل دنبي كريم صلى الله عليه وسلم قول دی﴿عن عائشة رضي الله عنها قالت قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من ثابر(واظب)على اثنى عشرة ركعة من السنة بنى الله له بيتافي الجنة اربع ركعات قبل الظهر وركعتين بعدها وركعتين بعدالمغرب وركعتين بعدالعشاء وركعتين بعدالفجر﴾ (يعنی چا چې په شپه اوورځ كې پردولس١٢ ركعتونوباندی همیشه توب وكړی الله تعالى به دغه سړی ته په جنت كې كورجوړكړي څلورركعته له ماښپن څخه وړاندي اودوه٢ركعته له ماښپن څخه وروسته اودوه٢ركعته له ماښام څخه وروسته اودوه٢ركعته له ماخستن څخه وروسته اودوه٢ ركعته دسهارله لمانځه څخه وړاندي ).

په دي حديث كې له عصرڅخه وړاندي دڅلوروركعتوذكرنشته په دي وجه امام محمد رحمه الله په مبسوط كې داڅلورركعته مستحب ګرځولي دي اواختيارېې وركړی دی چې كه له عصرڅخه وړاندي څلور ركعته اداء كوي اوكه دوه ركعته اداء كوي ولې چې له عصر څخه وړاندي په تعدادركعات كې اثار مختلف دي په سنن ابي داؤدكې دي ﴿رحم الله امرأصلى قبل العصراربعا﴾ (الله تعالى دي رحم وكړي پرهغه كس باندي كوم

چې له عصر څخه وړاندي څلور ركعته اداء كړي )اوپه ابو داؤد كې دي ﴿كان ﷺ يصلى قبل العصر ركعتين﴾ (چې نبی كريم ﷺ له عصر څخه وړاندي دوه ركعته اداء كول)، همداراز په حديث شريف كې له عشاء څخه وړاندي دڅلورركعتونوذكرهم نشته لهذاداڅلورركعته مستحب دي ،همداراز له نبی كريم ﷺ څخه پردي مواظبت ثابت نه دی،اوپه دي حديث كې له عشاء څخه وروسته ددوو ركعتو ذكردی حال داچې له حضرت ابن عمر ﷺ څخه مروی ده كوم كس چې له عشاء څخه وروسته څلور ركعته اداء كړي هغه ته به په ليلة القدركې دڅلورورركعتوداداء كولوپه اندازاه ثواب وركول كيږي ، نوداختلاف احاديثوپه وجه امام محمد رحمه الله اختياروركړی دی چې كه يې خوښه وي نوله عشاء څخه وروسته دي څلورركعته اداء كړي اوكه يې خوښه وي نودوه ركعته دي اداء كړي ،له مغرب څخه وروسته دشپږوركعتوپه باره كې له حضرت ابن عمر ﷺ څخه مروی ده چې نبی كريم ﷺ وفرمايل ﴿من صلى بعد المغرب ست ركعات كتب من الاوابين﴾(يعنی كوم كس چې له مغرب څخه وروسته شپږركعته لمونځ اداء كړي هغه به داوابينوپه فهرست كې وليكل شي ).

له جمعې څخه وړاندي دڅلورسنتونوپه باره كې دحضرت ابن عباس ﷺ حديث دی ﴿قال كان رسول الله ﷺ يركع من قبل الجمعة اربعا﴾ (يعنی نبی كريم ﷺ به له جمعې څخه وړاندي څلورركعته اداء كول )، اوله جمعې څخه وروسته په سنتوكې دائمه احنافواختلاف دی دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدله جمعې څخه وروسته څلورركعته سنت دي دامام ابويوسف رحمه الله په نزدشپږركعته سنت دي ،دامام صاحب دليل دنبی كريم ﷺ ارشاددی﴿ اذاصلى احدكم الجمعة فليصل بعدهااربعا﴾ (كله چې له تاسې څخه څوك دجمعې لمونځ اداء كړي نوله دي څخه وروسته دي څلورركعته اداء كړي )،دامام ابويوسف رحمه الله دليل دصحابه كرامو ﷺ اثاردي چنانچه مروی ده چې حضرت علی ،حضرت ابن عمر،اوحضرت ابوموسی اشعری ﷺ به له جمعې څخه وروسته شپږركعته اداء كول.

ف:علامه ابراهيم حلبی رحمه الله دمنية المصلی په شرح كبيری فصل فی النوافل كې دامام ابويوسف رحمه الله پرقول فتوی وركړي ده ولی چې دامام ابويوسف رحمه الله قول جامع دی دهغه په اختيارولوسره دڅلورو اودووركعتوالاپه ټولوروايتوكې تطبيق كيږي.

ف:بياله جمعې څخه وروسته دشپږركعتوپه ترتيب كې دمشائخ اختلاف دی دځينورأيه داده چې اول څلورركعته بيادوه ركعته اداء كړي حال داچې دعلامه انورشاكشميری رحمه الله رأيه داده چې اول دي دوه ركعته اوبيادي څلور ركعته اداء كړي كمافی العرف الشذی:وفی الست طريقان والمختار عندی ان ياتی بالركعتين قبل الاربع لعمل ابن عمر ﷺ فی سنن ابی داؤد(العرف الشذی: ۱/ ۲۳۰)

ف:په سنتوكې ترټولوډيرمؤكددفجرسنت دي ولی چې له حضرت عائشه ﷺ څخه مروی ده ﴿قالت قال رسول الله ﷺ ركعتاالفجرخيرمن الدنياومافيها﴾ (دفجردوه ركعته له دنياومافيهاڅخه بهتردي )،بياپه باقی سنتوكې دعلماؤاختلاف دی علامه حلوانی رحمه الله فرمايي چې دمغرب دوه ركعته په باقی سنتوكې ترټولومؤكددي ولی چې نبی كريم ﷺ هغه نه په سفراونه په حضركې پريښې دي ،بيادظهروروستنی دوه ركعته مؤكددي ولی چې له ظهرڅخه وروسته دوه ركعته متفق عليهادي ،بياله عشاء وروسته دوه ركعته بياله ظهرڅخه وړاندي څلورركعته بياله عصرڅخه وړاندي څلورركعته اوبياله عشاء څخه وړاندي دڅلوروركعتودرجه ده

،دځينورأيه داده چې له سنت فجرڅخه وروسته دظهراومغرب سنتونه سره برابردي اوځينې وايي چې له ظهرڅخه وړاندې څلوررکعته ترټولوډير مؤکددي كمافي الشامية : ثم اختلف في الافضل بعدركعتي الفجرقال الحلواني ركعتاالمغرب فانه ﷺ لم يدعهما سفرا ولا حضرا ثم التي بعدالظهر لانهاسنة متفق عليها بخلاف التي قبلها لانها قيل هي للفصل بين الاذان والاقامة ثم التي بعدالعشاء ثم التي قبل الظهر ثم التي قبل العصر ثم التي قبل العشاء وقيل التي بعدالعشاء وقبل الظهر وبعده وبعدالمغرب سواء وقيل التي قبل الظهر اكدوصححه الحسن وقداحسن لان نقل المواظبة الصريحة عليها اقوى من نقل مواظبته ﷺ على غيرها من ركعتي الفجر(ردالمحتار: ۱/۳۹۹،كذافي شرح منية المصلي:۳۶۸)

(۲۲۸)وَكُرِهَ الزِّيَادَةُ على أَرْبَعٍ بِتَسْلِيمَةٍ فِي نَفْلِ النَّهَارِ (۲۲۹)وَعَلَى ثَمَانٍ لَيْلًا (۲۳۰)وَالْأَفْضَلُ فِيهِمَا رُبَاعٌ (۲۳۱)وَطُولُ الْقِيَامِ أَحَبُّ مِنْ كَثْرَةِ السُّجُودِ

**ترجمه** :اومکروه ده پرڅلوررکعتوزيادت کول په يوه سلام سره دورځې په نفل لمانځه کې ،اوپه اته رکعته باندې دشپې په نفل لمانځه کې ،اوپه دواړوکې افضل څلورڅلوررکعته دي ،اوطويل قيام بهتره ده ترزياتوسجدو .

**تشريح** :کله چې مصنف ﷫ دسننوله بيان څخه فارغ شونودنوافلوپه بيان يې شروع وکړه ،علماؤ داباحت اوفضليت په اعتبارسره دشپې اوورځې په نفلوکې اختلاف کړی دی ،(۲۲۸) دامام ابوحنيفه ﷫ په نزددورځې په نفل لمانځه کې په يوه سلام سره دوه رکعته ياڅلوررکعته اداء کول مباح دي ،له دې څخه زيات مکروه دي ولې چې له دې څخه په زياتوکې نص نه دی واردشوی نوکه زيات مکروه نه وای نودبيان جوازلپاره به نبی کريم ﷺ يويادوه ځله زيات فرمايلی وای .

(۲۲۹)قوله وعلى ثمان ليلاأی وكره الزيادة ركعات ليلا:يعنی په شپه کې په يوه سلام سره اته رکعته اداء کول بلاکراهته جائزدي له اتوڅخه زائدمکروه دي ولې چې نبی کريم ﷺ په شپه کې په يوه سلام سره له اتورکعتوڅخه زيادت نه دی فرمايلی نوکه مکروه نه وای نودبيان جوازلپاره به نبی کريم ﷺ يويادوه ځله زيات فرمايلی وای .

ف،صاحبين په تراويح په قياسولوسره فرمايي چې دشپې په نفلوکې افضل داده چې دوه دوه رکعته اداء شي، اودورځې په نفلوکې دظهرپه سنتوپه قياسولوسره فرمايي چې افضل دادی چې څلوررکعته اداء شي ،امام صاحب فرمايي چې څلوررکعته په يوه تحريمه سره په اداء کولوکې دوام اومشقت زيات دي لهذاپه دې کې به فضليت هم زيات وي لقوله ﷺ اجرك على قدرنصبك (ستالپاره ثواب ستادمشقت په اندازه وي)، صاحبينوته ځواب ورکوي چې تروايح ځرنګه چې په جماعت سره اداء کيږي په دې وجه په تراويحوکې دجهت تيسيررعايت کيږي اوتيسيرپه دوورکعتوکې دی،دابايد يادوساتل شي چې دصاحبينواوامام صاحب اختلاف په افضليت کې دی په جوازکې نه دی.

(۲۳۰)دامام ابوحنيفه ﷫ په نزدپه شپه اوروځ اودواړوکې څلوررکعته افضل دي ولې چې نبی کريم ﷺ به له عشاء څخه وروسته په يوه سلام سره څلوررکعته اداء کول کوم چې حضرت عائشه ﵂ روايت کړی دی او دڅاښت لمونځ به يې هم په يوه سلام سره څلوررکعته اداء کاوو ،دامام ابوحنيفه ﷫ قول راجح

دی کمالی الشامية: ولو رجحت الاربع بزيادة منفصلة لما انها اكثر مشقة على النفس وقد قال ﷺ انما اجرک على قدر نصبک (ردالمحتار: ١ /٥٠٠)

(٢٣١)اوپه لمانځه کې طويل قيام كول تركثرت سجود افضل ده ﴿لقوله ﷺ افضل الصلوة طول القيام﴾ (افضل لمونځ هغه دی چې په هغه کې قيام طويل وي)،همدارازپه طويل قيام کې قرأة زيات وي اوپه كثرت سجود كې تسبيحات زيات وي اوترتسبيح قرأة افضل دی ،نوپه طويل قرأة كولوسره دوه ركعته اداء كول په مختصرقرأة كولوسره ترڈيرركعتواداء كولو افضل دی مګردادنفلی اوتنها(يواځې ) دلمانځه اداء كولوحكم دی دجماعت حكم دانه دی ولی چې په جماعت كې دكمزورو اومريضانو رعايت كيږي .

(٢٣٢)وَالْقِرَاءَةُ فَرْضٌ فِي رَكْعَتَيِ الْفَرْضِ (٢٣٣)وَكُلِّ النَّفْلِ وَالْوِتْرِ (٢٣٤)وَلَزِمَ النَّفْلُ بِالشُّرُوعِ وَلَوْ عِنْدَ الْغُرُوبِ وَالطُّلُوعِ (٢٣٥)وَقَضَى رَكْعَتَيْنِ لَوْ نَوَى أَرْبَعًا وَأَفْسَدَهُ بَعْدَ الْقُعُودِ الْأَوَّلِ (٢٣٦)اوقَبْلَهُ

**ترجمه** :اوقرأة فرض دی دفرضوپه دووركعتوكې ،اودنفل اووترو په ټولوركعتوكې ،اولازميږي نفل په شروع كولوسره كه څه هم دغروب شمس ياطلوع شمس په وخت كې وي ،اوددووركعتوقضاء به راوړی كه يې دڅلورونيت كړی وو اوهغه يې فاسد كړي وروسته له قعود اول څخه وروسته ،ياله دې څخه وړاندې .

**تشريح** :(٢٣٢)يعنی داحنافوپه نزددفرضوپه اولنيو دووركعتوكې قرأة فرض دی ولی چې دباری تعالی ارشاددی﴿فاقرؤاماتيسر من القرآن﴾(له قرآن څخه چې څومره قدراسان وي واياست يې )وجه استدلال داسې ده چې اقرؤاامرصيغه ده اومردتكرارتقاضانه كوي نوپه عبارة النص سره په يوه ركعت كې قرأة ثابت شواوځرنګه چې دوهم ركعت من كل وجه له ركعت اول سره مشابه دی په دې وجه په دلالة النص سره په ركعت ثانی كې قرأة واجب شو .

ف:په اخيرنيو دووركعتوكې لمونځ كونكی لره اختياردی كه يې خوښه شي نوسورة فاتحه دې ولولي يادې درې تسبيحات ولولي يادې ددريوتسبيحاتوپه قدرپټه خوله ودريږي ،همداله امام ابوحنيفه رحمه الله څخه مروی دی اوهمداله حضرت علی رضی الله عنه اوحضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه مروی ده مګرفاتحه ويل افضل دی ولی چې نبی كريم ﷺ له كله كله ترک سره پردې مداومت فرمايلی دی ،اوشفع ثانی له شفع اول څخه په دې اعتبارسره مختلفه ده چې شفع ثانی دسفرپه وجه سره ساقطيږي لهذادشفع ثانی قياس په شفع اول باندې نه شي كيدی .

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزددفرضوپه ټولوركعتوكې قرأة فرض دی دده دليل دنبی كريم ﷺ ارشاد ﴿لاصلوة الابفاتحة الكتاب﴾(يعنی بلاقرأة لمونځ نشته )دی اوهرركعت لمونځ دی لهذاپه هرركعت كې قرأة فرض دی ،احناف ځواب وركوي چې په حديث شريف كې له لفظ صلوة څخه صلوة كامله مراددی اوپه عرف كې دصلوة كامله اطلاق پردووركعتوكيږي نوله حديث څخه په دووركعتوكې دقرأة فرضيت ثابتيږي نه په هرركعت كې .

(٢٣٣)قوله وكل النفل والوتراى القرأة فرض فی كل النفل والوتر ،يعنی قرأة دنفلواووتروپه ټولوركعتوكې واجب دی ،دنفلوپه ټولوركعتوكې قرأة په دې وجه واجب ده چې دنفلوهردوه ركعته عليحده لمونځ دی اوددريم ركعت لپاره ولاړيدل دنوي تحريمې په څيرده لهذاپه اولنی تحريمې سره صرف دوه ركعته

واجبيږي .دعلماء احنافو مشهور قول همدا دی همدا وجه ده چې مشائخو ويلي دي چې په دريم ركعت كې به سبحانك اللهم الخ وايي .او په وتروكې احتياطا د نفلو په شان په هر ركعت كې قرأة واجب گرځول شوی دی ولی چې دوترو ثبوت په سنت سره دی او سنت مفيد يقين نه وي نو په وجوب وتروكې ديو قسم شبه په وجه سره دنفلو په شان دوترو په هر ركعت كې قرأة واجب وگرځول شو.

(۲۳۴)داحنافو په نزد نفل لمونځ په شروع كولو سره لازميږي كه څه هم دغروب پروخت يادطلوع شمس پروخت وي لهذا كه له شروع كولو څخه وروسته نفل فاسد كړل شول نو دهغه قضاء واجبيږي .دامام شافعي رحمه الله په نزد قضاء نه واجبيږي ولی چې نفل اداء كونكی متبرع دی او پرتبرع كونكی باندي لزوم نه وي .داحنافو دليل دادی چې له شروع څخه وروسته چې دنفلو كومه حصه اداء شوي ده هغه قربت اوعبادت شو او كوم شئ چې قربت اوعبادت واقع شي دهغه پوره كول لازم دی ترڅو عمل له باطلولو څخه محفوظ وساتل شي ولی چې ابطال عمل (عمل باطلول) حرام دي لقوله تعالی ﴿ولاتبطلوا أعمالكم﴾ (يعنی خپل اعمال مه باطلوئ) لهذا كه نفل عمل په منځ كې فاسد شو نو دهغه اعاده واجب ده.

(۲۳۵)يعنی كه يې دڅلورو ركعتو په نيت سره نفل شروع كړل او داولنيو دوو ركعتو په اخيركې دتشهد په اندازه كېنستی بيا يې وروستنی دوه ركعته فاسد كړل نو اوس دي ددوو ركعتو قضاء رواړي ولی چې هردوه ركعته جلاجلا لمونځ دی نو اول دوه ركعته خو په دتشهد په اندازه په ناسته سره مكمل شول او دريم ركعت ته ولاړيدل دنوي تحريمې په درجه كې ده لهذا دی دوروستنی دوو ركعتو لازمونكی شو لهذا دهغو دفاسد ولو په صورت كې به دهغو قضاء واجب وي.

(۲۳۶)قوله او قبله ای او افسد الاربع قبل القعود الاول قضی ركعتين فقط .يعنی كه يې دتشهد په اندازه له ناستې څخه وړاندي اولنی دوه ركعته فاسد كړل نو صرف داولنيو دوو ركعتو قضاء به راوړي په دي وجه چې ددوی په اخيركې بقدرتشهد ناسته فرض ده نو دترك فرض په وجه سره به داولنيو دوو ركعتو اعاده كوي او په اخرنيو دوو ركعتو يې څرنگه چې شروع نه ده كړي لهذا دهغو اعاده هم لازمه نه ده.

(۲۳۷)أولم يقرأ فيهن شيئا (۲۳۸)أو قرأ في الأولين (۲۳۹)أو الأخريين (۲۴۰)أو الأولين وإحدى الأخريين (۲۴۱)أو الأخريين أو إحدى الأولين (۲۴۲)أو إحدى الأخريين (۲۴۳)وأربعا لو قرأ في إحدى الأولين وإحدى الأخريين (۲۴۵)ولايصلي بعد صلاة مثلها

**توجمه**:ياپه يوه ركعت كې هم قرأة نه وي كړی ،يايې قرأة ويلی وي په اولنيو دوو ركعتو كې .ياپه اخيري دووكې .يايې قرأة وكړه په اولنيو دووا وله اخيرنيو دوو څخه په يوه كې .ياپه اخيرنيو دووكې اوله اولنيو دوو څخه په يوه كې .يايې صرف په اخيرنيو دووكې په يوه كې قرأة وكړ ،اوڅلور ركعته قضاء به رواړي كه يې قرأة وكړله اولنيو دوو څخه په يوه كې ،ياله اولنيو دو څخه په يوه كې اوله اخيرنيو دوو څخه په يوه كې ،اوله لمانځه څخه وروسته دي دده په شان لمونځ نه اداء كيږي.

**تشريح** :څرنگه چې دنفلو په هر ركعت كې قرأة فرض دی او په ترك فرض سره لمونځ فاسديږي اوس په څلور ركعتی لمانځه كې دترك قرأة اته صورتونه جوړيږي په دي باره كې له ائمه ثلاثه څخه دهريو جلاجلا اصول دي موږ دلته صرف دامام ابو حنيفه رحمه الله داصولو مطابق حكم بيان كړی دی ،دامام ابو حنيفه اصول دادي چې كه يې دشفع اول په يوه ركعت كې قرأة پرينښود نو تحريمه نه باطليږي لهذا په شفع ثانی كې

شروع صحيح ده نو بيا كه يې دوهمه شفع ،هم دترک قرأة په وجه سره فاسده كړه نو دڅلورو ركعتونو قضاء به راوړي او كه يې داولي شفع په دوو ركعتونو كې قرأة پريښودى نو په شفع ثاني كې شروع نه ده صحيح شوي لهذا صرف دشفع اولي قضاء به راوړي .دامام ابويوسف رحمه الله اصول دادي چې كه داولنى شفع په يوه ركعت كې قرأة پرېږدي يا په دواړو كې په هيڅ حال كې هم تحريمه نه باطليږي لهذا په شفع ثاني كې شروع په هرحال صحيح ده نو كه يې دترک قرأة په وجه سره ثاني فاسده كړه نو دڅلوروقضاء به راوړي . .اودامام محمد رحمه الله اصول دادي چې داولنۍ شفع په يوه ركعت كې دقرأة په پريښودلوسره هم تحريمه باطليږي نو په شفع ثاني كې شروع صحيح نه ده لهذا په هرحال به ددوو ركعتونو قضاء رواړي .

(۲۳۷)قوله اولم يقرأ اى في الاربع بالكلية شيئا فكذالک يقضي ركعتين .يعنى كه يې په څلورو ركعتوكې قرأة پرېښود ،نو په دې صورت كې به دامام صاحب رحمه الله په نزدددوو ركعتو قضاء رواړي ولى چې داولنۍ شفع په دواړوركعتو كې يې قرأة پريښى دى لهذادهغې قضاء به راوړي اوداولنۍ شفع په دواړوركعتو كې دقرأة دپريښودلو په وجه سره دامام صاحب رحمه الله په نزدپه شفع ثاني كې شروع نه ده صحيح شوي لهذادشفع ثاني قضاء لازمه نه ده .

(۲۳۸)قوله اوقرا في الاوليين اى قرا في الركعتين الاوليين لاغير .يعنى كه يې صرف په شفعه اوله كې قرأة وواېو او په دوهمه شفعه كې يې قرأة پرېښود .په دې صورت كې به هم صرف ددوهمې شفعه قضأ راوړي ولى چې ددوهمې شفع بناء پراوله صحيح ده اوقرأة يې هم صرف په شفع ثاني كې پرېښى دى لهذا صرف دهغې قضاء به راوړي .

(۲۳۹)قوله اوالاخريين اى قرا في الركعتين الاخريين لاغير .يعنى كه يې صرف په شفع ثاني كې قرأة وكړاو په شفع اوله كې يې پريښود .په دې صورت كې به دترک قرأة په وجه سره صرف دشفع اولي قضاء راوړي ځكه چې په شفع اولي كې د قرأة دپريښودلو په وجه سره دامام صاحب په نزدپه شفع ثاني كې شروع نه ده صحيح شوي لهذادشفع ثاني قضاء هم نه شته .

(۲۴۰)اوكه يې داولنۍ شفع په دواړوركعتوكې قرأة وكړاودشفع ثاني صرف په يوه ركعت كې يې قرأم وكړ ،نو په دې صورت كې شفع اوله صحيح ده اوشفع ثاني فاسده ده ولى چې قرأة يې په يوه ركعت كې پرېښى دى لهذا صرف دشفع ثاني قضاء به راوړي .

(۲۴۱)قوله اوالاخريين واحدالاوليين اى قرافي الركعتين الاخريين واحدى الاوليين .يعنى كه يې دشفع ثاني په دواړوركعتونو كې قرأة وكړاوداولي شفع په يوه ركعت كې يې قرأة وكړ ،نو په دې صورت كې به صرف دشفع اولى قضاء رواړي ولى چې ددې په يوه ركعت كې يې قرأة پرېښى دى اوشفع ثاني تامه ده .

(۱۴۲)قوله اواحدى الاخريين اى اوقرافي احدى الاخريين فقط .يعنى كه يې صرف دشفع ثاني په كوم يوه ركعت كې قرأة كړى وي ،نو په دې صورت كې په اولنۍ شفع كې دقرأة پريښودلو په وجه سره صرف دشفع اولي قضاء لازمه ده په شفع ثاني كې ځكه چې شروع نه ده صحيح شوي لهذادهغې قضاء هم نشته .

(۲۴۳)قوله واربعا لوقرا فی احدی الاولین ای ولقضی اربعا لوقرا فی احدی الاولین لاغیر ،یعنی که یې صرف دشفع اول په یوه رکعت کې قرأة وکړه دشفع اول په دوهم رکعت او دشفع ثانی په دواړو رکعتونو کې یې قرأة پرېښودی،نوپه دې صورت کې به دڅلورو رکعتو قضاء رواړي ولی چې دشفع اول په یوه رکعت کې دقرأة دپرېښودلوپه وجه سره به ددې قضاء رواړي اوپه شفع ثانی کې څرنګه چې شروع صحي شوي ده لهذادشفع ثانی په دواړو رکعتو کې دقرأة دپرېښودلوپه وجه سره به دهغې قضاء هم راوړي.

(۲۴۴)قوله واحدی الاولین واحدی الاخرین ای لقضی اربعا لوقرا فی احدی الاولین واحدی الاخرین ،یعنی که یې دهرې شفع په یوه رکعت کې قرأة وکړ،نوپه دې صورت کې به هم دڅلورو رکعتو قضاء راوړي ولی چې په شفع ثانی کې هم شروع صحیح شوي ده اودهرې شفع په یوه رکعت کې دقرأة دپرېښودلوپه وجه سره به دڅلورو قضاء راوړي.

(۲۴۵)یعنی دفرض لمانځه کولو وروسته دې دهغه په شان لمونځ نه کوي دامضمون دیوه حدیث حصه ده اودهغه مطلب دا بیان شوی دی چې دفرض لمانځه له اداء کولووروسته دهغه په ډول دوهم لمونځ نه اداء کوي چې دهغه په دوو اولنیورکعتوکې قرأة وکړي اوپه دوواخرنیورکعتوکې قرأة ونه وایي نودامضمون ددې خبرې بیان دی چې دنفلوپه هررکعت کې قرأة ویل فرض دی ،څینوحضراتو ددې دامطلب بیان کړی دی چې په دې کې په حقیقت کې له تکرارجماعت څخه ممانعت دی ،څیني وایي چې خلګوبه دفرضوله اداء کولووروسته دزیات ثواب لپاره دوهم ځل بیافرض اداء کول په دې روایت کې له دې عمل څخه ممانعت دی ،دڅینوحضراتورأیه داده چې ددې مطلب دادی چې محض دتوهم اووسوسې په اساس دې دفرضو اعاده نه کوي کمافی درالمختار (ولایصلی بعدصلوة)مفروضة(مثلها)فی القرأةاوفی الجماعةاولاتعادعندتوهم الفساد للنهی (ردالمحتار: ج۱ص۵۱۶)

(۲۴۶)قوله ویتنفل قاعدامع القدرةعلی القیام ابتداء (۲۴۷)وبناء (۲۴۸)وراکبا خارج المصر مومیاالی ای جهةتوجهت دابته (۲۴۹)ولایبنی بنزوله (۲۵۰)لابعکسه

**ترجمه** ،اونفل لمونځ په ناسته اداء کولی شي سره له دې چې په ولاړه قادروي ابتداء هم اوبناء هم ،اوپه دسپرتیاپه حالت کې له ښارڅخه دباندې په اشاره کولوسره کوم طرف ته چې یې هم متوجه وي دده سورلی ،اوبناء دې کوي په کښته کیدلوسره ،نه ددې په عکس کې.

**تشریح** ،(۲۴۶)یعنی په ولاړه له قدرت لرلوباوجودپه ناسته باندې نفل لمونځ اداء کول جائزدی ولی چې نبی کریم ﷺ فرمایلي دي﴿صلاةالقاعدعلی النصف من صلاةالقائم﴾(په ناسته لمونځ کولو کې دولاړې دلمانځه په نسبت نیم ثواب دی)وجه داستدلال په دې ډول ده چې دنبی کریم ﷺ مرادخویادادی چې دعذرپه وجه سره یې په ناسته اداء کړي یابغیرله عذره اول خونه شي کیدلی ولی چې دعذرپه وجه سره په ناسته دلمانځه اداء کول اوپه ولاړه سره دلمانځه اداء کول دثواب په اعتبارسره برابردي لهذاامتعینه شوه چې بغیرله عذرڅخه په ناسته دلمانځه اداء کول مراددي اوپه حدیث شریف کې فرض بالاجماع مرادنه دي ولی چې بلاعذره فرض لمونځ په ناسته اداء کول په اجماع سره جائزنه دي نونفل اداء کول متعین شول لهذابلاعذره ابتداء په ناسته سره نفل اداء کول جائزدي.

(۲۴۷)قوله بناء اى ويتنفل قاعدا مع قدرة القيام بناء ،په ولاړه دقدرت درلودلو سره په ناسته نفل لمونځ اداء كول بناء هم جائزدي يعنى كه چاپه ولاړه سره نفل لمونځ پيل كړبيابلاعذره كښينستى نو دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزدداهم جائزدى، او دصاحبينوپه نزد جائزنه دى ،دصاحبينو دليل دادى چې په ولاړه سره پيل كول دنذرپه شان دقيام لازمول دي لهذا اوس كښينستل جائزنه دي ،دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادى چې قيام په نوافلوكې ركن نه دى لهذا دقيام ابتداء ترک كول جائزدى نوبقاء خوبه په طريقه اولى سره جائزوي.

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دى ،كمافى شرح التنوير (ويتنفل مع قدرته على القيام قاعدا )لامضطجعا الابعذر (ابتداء و)كذا (بناء)بعدالشروع بلاكراهة فى الاصح كعكسه .وقال ابن عابدين :ومعنى البناء ان يشرع قائما لم يقعد فى الاولى اوالثانية بلاعذر استحسانا خلافالهما وهل يكره عنده الاصح لا (ردالمحتار: ۱\۵۱۵)

(۲۴۸)قوله وراكبا اى يتنفل ايضا حال كونه راكبا ،يعنى له ښار څخه دباندې په سورلى باندې نوافل اداء كول جائزدي كه مسافر وي اوكه مقيم وي كوم طرف چې يې هم دسورلى متوجه وي هغه طرف دي يې مخ ګرځولوسره لمونځ اداء كړي يعنى دقبلې طرف ته مخ ګرځول ضروري نه دي اوركوع اوسجده دي په اشاره سره كوي ﴿لحديث ابن عمر رضي الله عنه قال رأيت رسول الله ﷺ يصلى على حمار وهو متوجه الى خيبر يؤمى ايماء﴾ (يعنى ما حضور ﷺ وليدى چې حضور ﷺ په خره باندې په اشاره سره لمونځ اداء كوى په داسې حال كې چې مخ يې دخيبر وطرف ته وو.

ف:داحكم دسنن رواتبو هم دى ولى چې سنن هم په حقيقت كې نوافل دي ،البته دسنت فجر لپاره امام ابوحنيفه رحمه الله دكښته كيدلو حكم كوي،كما فى شرح التنوير (وهذا)كله (فى الفرض)والواجب بانواعه وسنة الفجر (ردالمحتار: ۱/۵۱۹)

ف:البته فرائض، اوواجبات ،(لكه وتر ،منذور ،صلوة جنازه ،سجده تلاوت )په سورلى باندې اداء كول جائزنه دي ،هوكه څاروى داسې سركشه ووچې له هغه څخه له كښته كيدلو څخه وروسته دوهم ځل سپريدل بغيرله كومک كونكى ممكن نه وواوكوم كومک كونكى هم موجودنه وي يادقافلې دتللوپه وجه سره ديو چادځان خطره وي ياكښته ختې وي وچه ځمكه نه وي يادكوم دښمن ياځناوردحملې انديښنه وي نوپه دي تولوصورتونوكې فرائض هم په سورلى باندې اداء كول جائزدي ،كمافى شرح التنوير (فهى صلوة على الدابة فتجوز فى حالة العذر )المذكور فى التيمم (لافى غيرها)ومن العذر المطر وطين يغيب فيه الوجه وذهاب الرفقاء ودابة لاتركب الابعناء (ردالمحتار: ۱\۵۱۸)

ف:مصنف رحمه الله په خپل قول ،خارج المصر،سره اشاره وكړه چې په ښار كې دننه جائز نه دي كمافى حاشية الشيخ عبدالحكيم الشهيد:والمختار عدم الجواز لما قالوا ان ماثبت على خلاف القياس لايتجاوز عن مورده ولذا اقتصر عليه فى المتون (هامش الهداية ۱\۱۳۳)،اوپه،على دابته ،سره يې اشاره وكړه چې په پښودتګ كونكى لپاره جائزنه دي.

(۲۴۹)وبنى بنزوله اى اذا افتتح التطوع راكبا ثم نزل بنى على صلوته ،يعنى كه چاپه سورلى باندې لمونځ اداء كوى اوبياكښته شو نوپه هغه لمانځه باندې دي بناء وكړي لمونځ دي مكمل كړي ولى چې دسپرتياپه حالت كې چې يې كومه تحريمه تړلي ده لكه څرنګه چې په اشاره سره لمونځ اداء كولوته شامله ده همداشان په ركوع اوسجده كولوسره دلمانځه اداء كولوته هم شامله ده ،هوده لره په اشاره سره داداء كولورخصت ذى اوپه

رکوع اوسجده سره اداء کول يې عزيمت دی ،او دلمانځه له باطلولو څخه بغير داکس له سورلی څخه په کښته کيدلو په رکوع اوسجده کولو قادر دی لهذا ده چې کوم لمونځ په اشاره سره اداء کړی دی او کوم چې اوس په رکوع اوسجده کولو سره اداء کوي دواړو ته داتحريمه شامله ده نو کله چې دواړو ته يوه تحريمه شامله ده نو ديوه بناء به پر هغه بل باندې جائزه وي .

(۲۵۰) قوله لابعکسه ای لو افتتح التطوع نازلا ثم رکب فلايبنی علی صلوته ،يعنی که چا کښته لمونځ اداء کوی بيا د لمانځه په منځ کې په سورلی باندې سپور شو نو چې په سورلی سپور شو په هغه لمانځه دې بناء نه کوي بلکه له سره به لمونځ اداء کوي ولی کومه تحريمه چې ده پرځمکه تړلې ده داتحريمه د رکوع اوسجدې واجبونکې ده لهذا دکوم چې ده التزام کړی دی د هغه بلاعذره ترک کول جائز نه دی ،همدراز د لمانځه له باطلولو بغير په سورلی په سوريدلو سره ده لره داداء کولو قدرت هم نشته په دې وجه په سورلی سپريدل عمل کثير دی لهذا دواړو ته يوه تحريمه شامله نه ده نو داول بناء پر ثانی هم صحيح نه ده .

## فصل في التراويح

دا فصل د تراويحو په بيان کې دی

مصنف رحمه الله تراويح د نوافلو په بحث کې د ذکر کولو پر ځای په مستقل فصل کې ذکر کړي دي ولی چې د تراويحو يو څو داسې خصوصيات دي چې په مطلق نوافلو کې نشته مثلا د رکعتونو د تعداد تعين ، او يو ځل په تراويحو کې د قرأن کريم د ختم کولو مسنون والی . او د رمضان لفظ ،له يرمض الذنوب ، (يعنی ګناهونه سوځوي ) څخه مأخوذ دی .

تروايح د ترويحه جمع ده او د رمضان المبارک په شپه کې د مذکوره نوافلو څلورو رکعاتو ته ترويحه ويل کيږي ،ولی چې په دوئ کې له هر و څلور رکعتونو څخه وروسته د استراحت لپاره ناسته کيږي ،يا په دې وجه چې لمونځ د مسلمانانو لپاره د سکون او راحت باعث دی ، کماقال ﷺ ارحنابالصلوة يابلال (ای بلاله د لمانځه په وجه مونږته راحت وبخښه )يا په دې وجه چې دا عمل هم د هغو اعمالو له جملې څخه دی چې په آخرت کې د راحت جنت ذريعه جوړيږي .

(۲۵۱) وسن في رمضان عشرون ركعة بعشر تسليمات بعد العشاء قبل الوتر وبعده (۲۵۲) بجماعة (۲۵۳) والختم مرة (۲۵۴) وبجلسة بعد كل أربع بقدرها (۲۵۵) ويوتر بجماعة في رمضان فقط

**ترجمه**: او سنت دي په رمضان کې شل رکعته په لسو سلامونو سره له عشاء وروسته او له وترو څخه مخکې او له وترو څخه وروسته هم ، ،په جماعت سره ،او يو ځل د قران شريف له ختم کولو سره ،او له ناسته کولو سره له هرو څلورو رکعتو وروسته په قدر د څلورو رکعتو ،او وتر دي صرف په رمضان کې په جماعت سره کوي .

**تشريح**: (۲۵۱) يعنی د رمضان په مياشت کې هره شپه د ماخستن له لمانځه څخه وروسته شل رکعته تراويح کول سنت مؤکد دي ،بيا دي امام دوئ ته پنځه ترويحاتو سره ورکړي هره ترويحه به د څلورو رکعتووي او هره ترويحه دي په دوو سلامونو سره اداء کړي په دې شان په لس سلامونو سره شل رکعته شول ولی چې له

حضرت ابوبکرصدیق ﷛ څخه وروسته نوروخلفاء راشدینوپه لسوسلامونوسره په شل رکعته تراویحوباندې مواظبت کړی دی ،وقال ﷺ علیکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدین (لازم ونیسئ زماسنت اودخلفاء راشدینوسنت ) . بیانو اصح دادی چې دتراویح وخت له عشاء وروسته تر اخرالليل پورې دی له وترو څخه مخکې وې اوکه وروسته ،دځینو حضراتو رأیه داده چې دعشاء ټول وخت دتراویحووخت دی که له عشاء اووتر و مخکې وې اوکه وروسته ،مګر قول اول ډیرصحیح دی ،کمافي شرح التنویر (ووقتها بعد صلوة العشاء)الی الفجر (قبل الوتر وبعده)في الاصح(ردالمحتار: ۱\۵۲۰)

ف :بعض روافض وایې چې تراویح سنت عمری دی ،داهل سنتو په نزد تراویح دنبی کریم ﷺ سنت دي، لقوله ﷺ ان الله تعالی فرض علیکم صیامه وسن لکم قیامه (الله ﷻ درمضان روژې پر تاسو باندې فرض کړې دي اوتراویح یې سنت ګرځولي دي )مګر تراویح ته په سنت عمری ویلو کې هم څه حرج نشته ولی چې حضور ﷺ شل رکعته تراویح نه دي کړي بلکه اته رکعته یې کړي دي ،اوپه تراویح یې موظبت هم نه ده کړی، دترک مواظبت عذر یې دا بیان کړی دی چې چیرته پرموږ نه فرض شي هو حضرت عمر ﷛ په وروسته کې شل رکعته کولي اوصحابه کرام ﷡ په وروسته کې په هغه عمل کونکی وو په همدي وجه دي ته سنت عمري ویل صحیح دي.

ف:په شلو رکعتو تراویح کې راز دادی چې سنن په دي وجه سره مشروع شوي دي چې په دوئ سره دفرائضو تکمیل وشي اودوترپه یو ځای کولوسره فرائض په ورځ کې شل رکعته دي نو ددوئ دتکمیل لپاره تروایح هم شل رکعته وګرځول شوي، دامام مالک په نزدتروایح شپږدیرش رکعته دي هغه داهل مدینه په عمل سره استدلال کوي.

(۲۵۲)قوله بجماعة ،جار ومجرور ،تر ،سنّ ،تعلق لري ،ای سنّ بجماعة ،یعنی تراویح په جماعة سره اداء کول سنت دي ولی چې پردي باندې دصحابه کرامو ﷡ اجماع ده اوحضور ﷺ دعدم مواظبت عذر ویلی ؤ هغه دا چې هسې نه راباندې فرض شي ،بیادتراویحو جماعت سنت کفایه دی ولی چې دحضرت ابن عمر ﷛ تخلف ثابت دی .

ف:فرائض په مسجد کې په جماعت سره اداکړي صرف دتراویحو جماعت په بل ځای کې کول جائز دی .په دي شرط چې دمحلي په کوم مسجد کې هم دترایحو جماعت وي ،اوکه دمحله په یوه مسجد کې هم د تراویح جماعة ونه شو نوټول ګناهګاردي. (احسن الفتاوی ۳\۵۲۰)

(۲۵۳)قوله والختم مرة ،دامجرور دی په ،جماعة ،باندي عطف دی ،ای سنّ ان یختم القرآن فی التراویح مرة.یعنی په تراویح کې یو ځل قرآن کریم ختم کول سنت دی ولې چې مروی ده چې د حضرت عثمان ﷛ په زمانه کې به خلکو دطول قرأت په وجه سره په لکړو تکیه کوله ظاهره ده چې له دومره تکلیف سره داځرنګه کیدای شي چې هغوئ دي په تراویح کې د قرآن ختم نه کاوو .بیا دې قرآن مجید په دي ترتیب وایې چې په هر رکعت کې د لس آیاتونه تلاوت وکړي ولی چې د تراویح ټول رکعتونه شپږسوه دي اودقرآن ټول آیاتونه شپږزره شپږسوه شپږشپیته دي په دي دول به په پوره میاشت کې یو ځل قرآن کریم ختم شي .

ف:نن سبا په تراويح کې دقرآن مجيد په اورولو باندي اجرت معلومه يامعروفه ځيني حضرات جائز بولي او ځيني نور حضرات يې بيانا جائز بولي په کوم کې چې ابتلاء عامه هم شته نومناسبه ده چې په دي باره کې دحضرت مولانااشرف علی تهانوی ﷺ فتوی بلفظه نقل کړم . سوال: نمبر۱، حافظ چې په تراويح کې دقرآن کريم ختم کوي نوهغه ته ورکول جائزدي ،يااخستل اوورکول دواړه ناجائزدي ؟

نمبر۲ :اوکه بلااجرت حافظ پيدانه شي نوپه اجرت به يې مقرروي اوکه په الم ترکيف سره ترواېح وکړي .

نمبر۳ :اوکله چې په امامت اجرت اخيستل جائزدی نوپه تراويح کې خوهم يوځل قرآن ختمول سنت مؤکد دی نوپه دي اجرت اخيستل ولی ناجائزدی ؟

الجواب :نمبر۱ :زه يې ناجائزګڼم ،نمبر۲ :زه د ،الم ترکيف ،ورته وايم ،نمبر۳ :فقهاء کرامو چې يوځل ختم ته سنت ويلی دی له کوم ځخه چې ظاهراسنت مؤکدمراددي نودايې هم ليکلي دي چې که چيرته پرخلکوثقيل وي هلته دي په الم ترکيف وغيره سره اداء کوي نوکله چې يې دتقليل جماعت دمحذورځخه دساتلولپاره ددي سنت دترک اجازه ورکړي ده نوداستيجارعلی الطاعة محذورخوتر دي لوی دی له هغه ځخه دساتي لپاره ولی ونه ويل شي چې په الم ترکيف وغيره سره دي اداء کړي اوله دي ځخه د نمبر۱،او۲وجه هم معلومه شوه . (امدادالفتاوی ج۱ص۳۲۱)

سوال:که زيد ته ځوک بغيرداجرت له معلومولوپه خپله خوښه لس ياپنځه روپۍ ورکړي يايې ديوي مياشتي لپاره امام مقررکړي اوځه اجرت ورکړي په دي ډول سره عندالشرع اجرت حلال دی اوکه يا؟اودامامت په صورت کې خوپه حلال والی کې هيڅ شبه نه معلوميږي ولی چې متأخرينوعلماؤ دامامت پراجرت فتوی ورکړي ده ستاځه رأيه ده په تفصيل سره تحريرکړه . ؟

الجواب :دجواز فتوی هغه وخت ده چې امامت مقصود وي حال داچې دلته مقصود په تراويح کې ختم قرآن دی اودامحض يوحيله ده په دياناتو کې کوم چې معامله فی مابين العبدوبين الله ده حيل مفيدجوازواقعی لره مفيدنه وي لهذادانا جائزده (امدادالفتاوی :۱۱\۳۲۲)وقال العلامة ظفراحمد رحمه الله :والاصل فيه ماحققه ابن عابدين رحمه الله في رسالته ،شفاء العليل وبل الغليل ،من حرمة الاجارة والاستيجار على مجرد تلاوة القرآن ولايخفى ان الحافظ الذى لايؤم في الصلوات الخمس وانما للتراويح ويختم فيها يأخذ الاجر على ذالک انما هو يأخذ الاجر على الامامة فامامة التراويح بمجردها لايجوز اخذ الاجر عليها لعدم الضرورة التي بها ابيح الاجرة في تعليم القرآن وامامة المكتوبة والاذان وغيرها فانها فرائض واسنن مؤكدة من شعائر الاسلام وامامة التراويح سنة الكفاية وتاتى بقراءة سورة قصيرة من آخر القران ولاتوقف على الختم ،قال في مراقي الفلاح :وسن ختم القران فيها مرة في الشهر على الصحيح ،وان مل به القوم قرأ بقدر مالايؤدي الى تنفيرهم في المختار ،لان تكثير القوم افضل من تطويل القراءة وبه يفتى ،قال الزاهدي :يقرأ كما في المغرب اى بقصار المفصل بعد الفاتحة اه قال الصدر الشهيد :الجماعة سنة على الكفاية فيها حتى لو اقامها البعض في المسجد بجماعة وباقي اهل المحلة اقامها منفردا في بيته لايكون تاركا للسنة لانه يروى عن افراد الصحابة التخلف اه (من مراقي الفلاح :ص ۲۲۰)بخلاف جماعة المكتوبات فانها واجبة على العين اوسنة مؤكدة وايضا فانها من الشعائر فتحققت الضرورة فيها دون جماعة التراويح فلايجوز اخذ الاجرة على امامتها مجردة ولاعلى الختم فيها والتخلف عن مثل هذا الامام اولى .والله اعلم (امدادالاحکام .۳\۵۵۹.کتاب الاجارة )

ف:دشبينې لپاره دخلکوپه جمع کولوسره دتراويح په شان په نفل لمانځه کې دقران کريم اورول مکروه دي اوکه دشبينه دجماعت لپاره دعوت نه وي ورکړل شوی مقتدی صرف دوه کسان وي دلاؤډاسپيکرله اوازڅخه خلک نه په تکليف کيدل نوبلاکراهته جائزده ليکن په متعارفه شبينه کې قبائح مثلا(نوافل په

جماعت سره اداء كول ،نوم اونښان ،دلاؤډاسپيكرپه وجه سره دمحلي دوالاوو په كار،ارام اوعبادت كې خلل ،اوله ضرروت څخه زياته روښنايي اومتايي وغيره التزام )په هرحال وي لهذا له دي څخه اجتناب ضروري دي. (احسن الفتاوى ،٣/٥٢٢)

(٢٥٤)قوله وجلسة اى وسن جلسة كالقة بعد ركعات ، ،يعنى دهرودوو ترويحو په منځ كې داستراحت په غرض ديوي ترويحې په اندازه كښينستل مستحب دي ،همداشان دپنځمې ترويحې اووترو په مينځ كې كښينستل هم مستحب دي ،ولى چې تراويح له ترويحه څه مأخوذ دى اوترويحه دراحت په معنى سره ده نودتراويح معنى په دي استراحت دلالة كوي ،اوددوو ترويحو په منځ كې كه يې خوښه وي نوتسبيح دي وايې يادي تلاوة كوي يادي خاموش اوسي يادي هريو ځان ته لمونځ كوي ، ييادي امام دوئ ته وترور كړي .

(٢٥٥)صرف په رمضان كې به وتر په جماعة سره اداكوي ولى چې پر دي دمسلمانانو اجماع ده .له رمضان المبارك څخه علاوه دي وتر په جماعت سره نه كوي ولى چې وتر من وجه نفل دي اودرمضان المبارك ماسوا نفل په جماعة سره اداء كول مكروه دي.

ف:كه چاله امام سره دتراويحو څوركعتونه ومونده اوڅه تيرشوي وواوامام دوتروداداء كولو لپاره ولاړشونوداكس دي له امام سره اول وترادا، كړي وروسته دي پاتي تراويح اداء كړي كمافى شرح التنوير :فلوفاته بعضها وقام الامام الى الوتر اوتر معه ثم صلى ماله (ردالمحتار : ١\٥٢١)

## بَابُ إِدْرَاكِ الْفَرِيضَةِ

دا باب دفرض موندلو په بيان كې دى

ددي باب له،باب نوافل، سره مناسبت دادى چې په جماعة سره لمونځ اداء كول له اصل فرض څخه زائد شئ دى لكه نفلي لمونځ چې داصل فرائض څخه زائد شئ ده نوپه دي وجه يې له، باب نوافل، وروسته باب ادراك الفريضة ذكر كړ.

ف:بيااصل دادى چې بلاعذره قصدا عبادت ماتول حرام دى لقوله تعالى ﴿لاتبطلوااعمالكم﴾ (يعنى خپل اعمال مه باطلوئ )البته داكمال لپاره ماتول جائزده لكه څرنگه چې دمسجد خرابول داصلاح مسجد لپاره ،نوڅرنگه چې ترانفرادا (يواځې )لمانځه اداء كولو څخه په جماعة سره دلمانځه په اداء كولو كې ثواب ډيردى په دي وجه ددي ثواب دحاصلولو لپاره دمنفردلپاره دخپل لمانځه ماتول جائزدى .

(٢٥٦)صلى رَكعةً مِنَ الظُّهرِ فأُقِيمَ يُتِمُّ شَفعًا وَيَقتَدِي (٢٥٧)فَلَو صَلَّى ثَلاثًا يُتِمُّ وَيَقتَدِي مُتَطَوِّعًا (٢٥٨)لا إن صلى رَكعةً مِنَ الفَجرِ اوِ المَغرِبِ فَأُقِيمَ يَقطَعُ وَيَقتَدِي (٢٥٩)وَكُرِهَ خُرُوجُهُ مِن مَسجِدٍ أُذِّنَ فِيهِ حَتّى يُصَلِّيَ (٢٦٠)وَإن صَلَّى لا إلّا فِي الظُّهرِ وَالعِشَاءِ إن شَرَعَ فِي الإقامَةِ

ترجمه :دماپښين يوركعت لمونځ يې اداء كړى ووچې اقامت وشونودوه ركعته دي پوره كړي لواقتداء دي وكړي ،اوكه يې دري ركعته اداء كړي وونوپوره دي كړي اودنفلو په نيت سره دي اقتداء وكړي ،نوكه يې يوركعت دفجريامغرب اداء كړى ووبيااقامت وشونومات دي كړي اواقتداء دي وكړي ،اومكروه ده له داسي مسجد څخه وتل په كوم كې چې اذان شوى وي ترڅوچې لمونځ اداء كړي ،اوكه يې لمونځ اداء كړى وي نومكروه نه ده مگرپه ماپښين اوعشاء كې كه اقامت شروع شوى وو.

**تشريح** :(۲۵۶)قوله يتم شفعا اى يتم تلك الركعة شفعا بان يضم اليها ركعة اخرى ،يعني كه چادماپښين اول ركعت اداء كړي وي يعني اول ركعت يې په سجده سره مقيدكړچې دجماعت لپاره اقامت وشويعني جماعت شروع شونوداكس دي له خپل دي ركعت سره يوبل ركعت هم اداء كړي اوله امام سره دي شريک شي ولې چې له امام سره دشريک كيدلولپاره داول ركعت په پرېښودلوكې بطلان عمل راځي كوم چې ممنوع دى لقوله تعالى ، لاتبطلوا اعمالكم ، (يعني خپل اعمال مه باطلوئ)البته كه يې اول ركعت په سجده سره نه ومقيدكړى چې جماعت ودريدى نواوس دي داركعت مات كړي اوپه جماعت كې دي شامل شي ولې چې اول ركعت په سجده سره له مقيدكولوړاندي ماتيدلى شي ددي نظيرموجوددى مثلاځوک پرڅلورم ركعت له كښينستلوبغيردپنځم ركعت لپاره ولاړشونوترڅوچې يې پنځم ركعت په سجده سره نه وي مقيدكړى دهغه دپرېښودلواوقعدي طرف ته دېرته راګرځيدلوحكم دى نودلته دي هم دايوركعت مات كړي .

**ف**:دامام شافعي رحمه الله په نزددي په دي يوه ركعت باندي دتشهدپه ويلوسره سلام وګرځوي دايوركعت ده لپاره نفل شواحناف ځواب وركوي چې په حديث شريف كې نبي كريم ﷺ له بتيرايعني تنهايوه ركعت له اداءكولوڅخه منع فرمايلې ده .

**ف**:په متن كې له اقامت څخه مرادپه لمانځه كې دامام شروع كول مراددي دمؤذن اقامت كول مرادنه دي نوكه مؤذن اقامت شروع كړاومتنفل خپل اول ركعت په سجده سره نه ومقيدكړى نوهغه دي داركعت پرېږدي نه بلكه بالاتفاق دي دواړه ركعتونه مكمل كړي كمافي الشامية :المراد بالاقامة الشروع في الفريضة في مصلاه لااقامة المؤذن الخ ح اى فلايقطع اذااقام المؤذن وان لم يقيد الركعة بالسجدة بل يتمها ركعتين.(ردالمحتار : ۱\۵۲۵)

(۲۵۷)قوله ويقتدى متطوعا اى ويقتدى بالامام حال كونه متطوعا ،يعني كه چادماپښين دري ركعته اداءكړل اوس جماعت ودريدى نوداكس دي خپل څلورركعته پوره كړي ولې چې للاكثرحكم الكل نوددي دماتولو احتمال نشته لهذا:جماعت دفضليت دحاصلولولپاره دي دنفلوپه نيت سره په جماعت كې شريک شي . دفرضوپه نيت سره دي نه شريک كيږي ولې چې په يوه وخت كې دفرضوتكرارمشروع نه دى .پاتي شودنفلوجماعت هغه هغه وخت مكروه دى چې امام هم نفل اداءكوي كه امام فرض اداء كوي اومقتدى دنفلونيت وترې نودامكروه نه دى .

(۲۵۸)كه چادسهاريادماښام يوركعت كړى ؤ چې جماعت ودريدى نوترڅوچې هغه دوهم ركعت په سجده سره مقيد كړى نه وي نودجماعة ثواب حاصلولو لپاره دې هغه يو ركعت پرېږدي اوله امام سره دي په جماعة كې شريک شي .البته كه يې دوهم ركعت په سجده سره مقيد كړى وونواوس دي هغه خپل لمونځ پوره كړي په جماعة كې دي شركت نه كوي .

(۲۵۹)په كوم مسجد كې چې اذان وشي اوس له هغه مسجدڅه بغير له لمانځه اداء كولو وتل مكروه تحريمي دى البته كه په دي كس پسي دكوم بل جماعت انتظام متعلق وونوبيا وتل مكروه نه دي ولې چې په حقيقت كې داكس دتكميل لپاره وځي لقوله ﷺ ، لايخرج من المسجد بعد النداء إلا منافق او رجل يخرج لحاجة يريد الرجوع ( په مسجد كې له اذان كيدلوڅخه وروسته ځوک نه ووځي مګرمنافق ياهغه كس كوم چې دېرته راتلوپه اراده سره دكوم ضرورت لپاره ووځي ).

(۲۶۰)قوله وان صلى لا اى ان صلى تلك الصلوة التي اذن لها فلايكره خروجه ،يعني كه دي كس د دي وخت لمونځ اداء كړى وي دكوم لپاره چې اذان وشو نو د دي كس لپاره له مسجد څخه وتل مكروه نه ده ولى چې دي كس يوځل دالله ﷻ دداعي يعني د مؤذن دعوت قبول كړى دى ،البته كه دا لمونځ دماپښين يا دماخستن وو او مؤذن اقامت شروع كړ نو اوس دي نه وځي بلكه دنفلو نيت دي وكړي او په جماعة كې دي شامل شي ولى چې كه اوس دي ووځي نو پر ده باندي دجماعة دمخالفت تهمت لګول كيږي .

(۲۶۱)ومن خاف فوات الفجر إن أدى سنته ائتم وتركها (۲۶۲) وإلا لا (۲۶۳) ولم تقض إلا تبعا (۲۶۴) وقضى التي قبل الظهر في وقته) قبل شفعه (۲۶۵) ولم يصل الظهر جماعة بإدراك ركعة بل أدرك فضلها

**ترجمه** :او چاله چې خوف دفجر د دواړو ركعتو دفوت كيدلو كه اداء كړي سنت فجر نو اقتداء دي وكړي او سنتونه دي پريږدي ،كه نه نو نه ،او قضاء دي نه راوړي مګر دفرضو په تابع جوړولو سره ،او قضاء دي راوړل شي له ماپښين څخه دمخكنيو څلورو سنتو د دي وخت له دوو ركعتو څخه وړاندي ،او نه يې ده اداء كړى دماپښين لمونځ په جماعت سره ديوه ركعت په موندلو سره بلكه موندلى يې دى دجماعت فضليت .

**تشريح** :(۲۶۱)كه يو چا ته ويره وه چې كه زه دفجر سنت كوم نو په جماعة سره به دواړه ركعته ګير نه كړم نو دى دي سنت پريږدي او له امام سره دي په جماعة كې شامل شي ولى چې دجماعة ثواب دفجر تر سنتو زيات دى او په ترک جماعت كې شديد وعيد راغلى دى ،وهو قول ابن مسعود ﷺ لايتخلف عن الجماعة الامنافق (يعني له جماعت څخه نه پاتي كيږي مګر منافق ).

(۲۶۲)قوله والالا اى وان لم يخف فوت الفجر ان اشتغل بالسنة الفجر فلايترک السنة ،يعني كه دواړو ركعتو نو دتيريدلو ويره نه وه بلكه ديوه ركعت دنيولو اميد وو نو اوس دي سنت نه پريږدي ولى چې په دي صورت كې ددواړو فضيلتونو جمع كول ممكن دى ..

ف:مګرشرط دادى چې سنت له مسجد څخه دباندي اداء كړي كه له مسجد څخه دباندي ځاى نه وي نو دديوال ياستني شاته دي اداء كړي ،دصف شاته بلاحائل اداء كول مكروه تحريمي ده . ترټولو زيات كراهة په دي صورت كې دى چې په صف كې دننه دامام په مخالفت كولو سره سنت اداء كړي بيا له صف شاته په بلاحائل اداء كولو كې دير كراهت دى كمافي الشامية (قوله عند باب المسجد )اى خارج المسجد كماصرح به القهستاني وقال في العناية لانه لو صلاها في المسجد كان متنفلا فيه عند اشتغال الامام بالفريضة وهو مكروه فان لم يكن على باب المسجد موضع للصلوة يصليها في المسجد واشد كراهة ان يصليها مخالطا للصف مخالفا الجماعة والذي يلي ذالک خلف الصف من غير حائل (ردالمحتار: ۱\۵۳۰)

(۲۶۳)قوله ولم تقض الاتبعا اى ولم تقض سنة الفجر الاتبعا للفرض ،يعني كه له چا څخه صرف دسهار سنت قضاء شي نو دشيخينو په نزد به صرف دسنتو قضاء نه راوړي ،امام محمد رحمه الله فرمايي چې له زوال څخه وړاندي يې قضاء راوړل بهتر دي ،لقوله ﷺ من لم يصل ركعتين الفجر فليصلهما بعد ماطلعت الشمس ، (كوم كس چې دسهار سنت ونكړي نو دلمر راختلو وروسته دې اداء كړي ).هو كه فرض او سنت دواړه قضاء شو نو دفرضو په اتباع كې ترزوال مخكې سنت هم راوګرځوي ولى چې په سننو كې اصل دادى چې قضايې نه وشي ولى چې قضاء په واجب پسې مختصه ده البته په ليلة التعريس كې حضور ﷺ دفرضو په اتباع كې دسنتو قضاء راوړي وه لهذا دي صورت څخه علاوه دسنتو په باره كې چې كوم اصل دى يعني عدم قضاء پر هغه به عمل كيږى .

(۲۶۴)كه له چاڅخه دماپښين مخكښې څلور ركعته سنت پاتې شې نو دامام محمد رحمه الله په نزد دې هغه دماپښين په وخت كې له ورستيو دوو ركعتو سنتو څخه وړاندې اداء كړل شي په همدې فتوى ده په متونو كې همدا ليكل شوي دي ليكن په فتح القدير او مبسوط شيخ الاسلام كې يې ددوو ركعتو تقديم ته ترجيح وركړې ده ﴿لحديث عائشة رضي الله عنها انه ﷺ كان اذا فاته الاربع قبل الظهر يصليهن بعد الركعتين﴾ (يعنى كله چې به له حضور ﷺ څه دماپښين تر لمانځه مخكښې څلور ركعته سنت پاتې شول نو هغه به يې له دوو ركعتو سنتو وروسته اداء كول) دا دامام ابو حنيفه رحمه الله قول دى. (كما فى الشامية: ۵۳۱\۱)

(۲۶۵)كه چا دماپښين يو ركعت په جماعت سره وموندى نو داكس دظهر په جماعت سره اداء كونكى نه شمارل كيږي ولى چې ده صرف دظهر يو ركعت په جماعت سره اداء كړى دى ،نو كه چاقسم واخيست چې والله زه به دماپښين لمونځ په جماعت سره اداء نه كړم بياده يو ركعت په جماعت سره وموندى نو داكس نه حانث كيږي ،هو دجماعت ثواب ده ته حاصليږي ولى چې داخرشئ موندونكى دشئ موندونكى شمارل كيږي ،ليكن داكس كه څه هم دجماعت ثواب موندلى شي مګردمدرک ثواب بياهم زيات دى ولى چې مدرک تحريمه هم موندلې ده.

(۲۶۶)وَيَتَطَوَّعُ قَبْلَ الْفَرْضِ إِنْ أَمِنَ فَوْتَ الْوَقْتِ وَإِلَّا لَا (۲۶۷)وَإِنْ أَدْرَكَ إِمَامَهُ رَاكِعًا فَكَبَّرَ وَوَقَفَ حَتَّى رَفَعَ رَأْسَهُ لَمْ يُدْرِكِ الرَّكْعَةَ (۲۶۸)وَلَوْ رَكَعَ مُقْتَدٍ فَأَدْرَكَهُ إِمَامُهُ فِيهِ صَحَّ

**توجمه**:اونفل اداء كولى شي له فرضو څخه وړاندې كه خطره نه وه دوخت دفوت كيدلو كه نه نو نه ،اوكه يې وموندى امام په ركوع كې اوتكبير يې ووايو او ولاړ پاتې شو ترڅو چې امام سر اوچت كړ نو ده نه دى موندلى داركعت ،اوكه ركوع وكړه مقتدى بياموندى دى امام په ركوع كې نو دا صحيح ده.

**تشريح**:(۲۶۶)كه دوخت دتيريدلو ويره نه وه نو ترفرضو مخكښې څومره چې غواړي نفل كولاى شي كه دوخت دوتلو ويره وه نو نفل دي نه كوي ترڅو فرض له خپل وخت څخه فوت نه شي بلكه كه دفرضو دفوت كيدلو ويره وه نو نوافل كول حرام دي ولى چې په دې وخت كې نفل كول دفرضو دفوت كيدلو سبب دي.

**ف**:تطوع سنن مؤكده اونوافلو دواړوته شامل دي نو دځينو حضراتو رأيه داده چې دوخت دتنګى په صورت كې دسنن اونوافلو دترک حكم دظهر اوفجر دسنتو علاوه په نورو كې دى ،ولى چې دظهر او فجر سنن دنورو سننو په مقابله كې زيات مؤكد دي .هو كه وخت بالكل تنګ شي چې دفرضو علاوه دنورو ځاى پاتې نه شي نو بيا دظهر اوفجر سنن هم پريښودلى شي .حال دا چې دځينو نورو علماو رأيه داده چې څرنګه چې سنن دفرائضو دتكميل لپاره دي لهذا دفرائضو دثواب دپوره كيدلو لپاره ټول سنن په هيڅ حال كې نه پريښودل كيږي هو كه دوخت دفوت كيدلو خوف وي نو سنن دي ترک كړي اوفرائض دي اداء كړي.

(۲۶۷)كه يو څوک په داسې وخت كې راورسيدى چې امام په ركوع كې وو او دې كس تكبير ووايو تر دومره پورې ولاړ وو چې امام له ركوع څخه سر اوچت كړ نو ده له امام سره داركعت نه دى موندلى ولى چې دركعت موندلو لپاره شرط دادى چې له امام سره دلمانځه په افعالو كې شريک وي يعنى په قيام يا ركوع حال دا چې دى نه په قيام كې شريک شوى دى اونه په ركوع كې شريک شوى دى.

ف :كه مقتدي په داسې حال كې ركوع ته ولاړشي چې امام له ركوع څه راپورته كيږي مگر تراوسه لاامام دومره نه دراپورته شوی چې لاسونه يې گونډوته نه رسيږي ،په دې حال كې مقتدي دومره ټيټ شو چې لاسونه يې گونډوته رسيدل نوده داركعت وموندی اوس ده لږه ديوه تسبيح په اندازه په ركوع پاته كيدل واجب دی ،باقي تسبيحات دې پريږدي ولې چې دامام اتباع كول واجب ده كمافي الهندية :ادرك الامام في الركوع فكبر قائما ثم شرع في الانحطاط وشرع الامام في الرفع الاصح ان يعتدبها اذا وجدت المشاركة قبل ان يستقيم قائما وان قل هكذا في المعراج (هنديه: ١\١٣٠)

(۲۶۸)كه مقتدې ترامام مخكې ركوع ته ولاړي بيا امام هم له ده سره په دې ركوع كې شريک شونو دده دا ركوع صحيح شوه ولې چې دامام اومقتدي دركوع څخه په يوجزء كې شريک كيدل شرط دی اودا شرط دلته موجود شو ولې دركوع په پيل كې كه څه هم شركت نشته مگر په اخير جزء كې شته .مگر له امام څه وړاندې ركوع ته تلل مكروه دي لقوله ﷺ ﴿ لاتبادر ني بالركوع والسجود﴾ (له ما څخه په ركوع اوسجده كې تلوار مه كوي )،اوكه امام لا ركوع ته نه وتللی چې دی اوچت شونو جائزنه ده ولې چې دركوع په يوه جزء كې شركت موجودنه شو .

ف:كه مقتدې قصدا ترخپل امام مخكې سلام وگرځوی نودهغه لمونځ صحيح دی مگرداسې عمل كول مكروه تحريمي ده ولې چې دامام متابعت واجب دی،البته كه يې سهوا يادداسې سختي مجبوري په وجه سره سلام وگرځاووكومه چې په لمانځه كې دتشويش سبب جوړيدله لكه خوف حدث وغيره نوبيا كراهت نشته .

## باب قضاء الفوائت

داباب دفوت شويو لمونځونو دقضاء په بيان كې دی

مصنف رحمه الله داداء اودهغه دمتعلقاتو له بيان څه فارغ شو نودقضاء شويو لمونځونو بيان يې شروع كړ ځرنگه چې اداء اصل ده اوقضاء دهغې خليفه ده نوپه دې وجه يې داداء بيان مقدم كړ ،عين واجب مستحق ته سپارلو ته اداء ويل كيږي اومثل واجب سپارلو ته قضاء ويل كيږي.

(۲۶۹)التَّرتِيبُ بينَ الفَائِتَةِ وَالوَقتِيَّةِ (۲۷۰)وَبَينَ الفَوَائتِ مُستحَقٌّ (۲۷۱)وَيَسقُطُ بِضِيقِ الوَقتِ وَالنِّسيَانِ (۲۷۲)وَصَيرُورَتِهَا سِتًّا (۲۷۳)وَلَم يَعُد بِعَودِهَا إلى القِلَّةِ (۲۷۴)فَلَو صَلَّى فَرضًا ذَاكِرًا فَائِتَةً وَلَو وِترًا فَسَدَ فَرضُهُ مَوقُوفًا

ترجمه: ترتيب دقضاء اووختي لمونځوپه منځ كې ،اوځوفوت شويو لمونځوپه منځ كې واجب دی ،او ساقطيږي دوخت په تنگۍ سره اوپه نسيان (هيره )سره ،اودفوت شويو لمونځونوپه شپږكيدلو سره ،او ترتيب نه راگرځي دلمونځوپه راگرځيدلو سره دلږوالي طرف ته ،نوكه چافرض لمونځ اداء كړپه داسې حال كې چې فوت شوی لمونځ يې په يادووكه څه هم هغه وتروي نوفاسديږي دده فرض لمونځ په فساد موقوف سره .

تشريح:(۲۶۹)داحنافو په نزد په فوتي لمانځه اووختي لمانځه كې ترتيب واجب دی يعنی دقضايې لمانځه په وختي لمانځه وړاندې كول واجب دی ولې چې دحضرت ابن عمر رضي الله عنه اثردی من نام عن صلوة اونسيها

فلم يذكرها الا وهو مع الامام فليصل التي هو فيها ثم ليصلي التي ذكرها ثم ليعد التي صلى مع الامام (كه د چا څخه د خوب په وجه لمونځ قضاء شو يا يې هيرشو بيا يې په يادشو هغه وخت چې له امام سره په لمانځه ولاړوو نوله امام سره دي لمونځ وكړي بيا دي قضايي لمونځ وكړي بيا دي له امام سره اداكړى لمونځ راوګرځوي ) څرنګه چې قضايي لمونځ په وختي لمانځه مقدم كول واجب دي په دي وجه په حديث شريف كې دوختي لمانځه دمقدم كولو په وجه سره دراګرځولو حكم شوى دى .

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزد ترتيب مستحب دى واجب نه دى ولى چې هرفرض لمونځ په خپله اصل دى لهذاد كوم بل فرض لپاره به شرط نه وي ولى چې شرط تابع وي اوپه اصالت اوتبعيت كې منافاة دى.امام شافعي رحمه الله ته ځواب وركړل شوى دى چې ديوشئ بنفسه اصل والى دكوم بل شئ لپاره له شرط كيدلو سره منافي نه دى لكه ايمان چې اصل بنفسه دى خوبياهم دنوروټولو اعمالو لپاره شرط دى .

(٢٧٠)يعني ترتيب لكه څرنګه چې دوختي اوقضايي لمانځه په منځ كې فرض دى همداشان په خپله دقضايي لمونځونو په منځ كې هم شرط دى ،نوكه له چاڅخه څولمنځونو قضاء شول نو دهغو قضاء دي په هغه ترتيب سره راوړي په كوم ترتيب سره چې اداء واجب شوي وه ﴿لان النبي ﷺ شغل عن اربع صلوات يوم الخندق فقضاهن مرتبا ثم قال صلوا كما رايتموني اصلي﴾ (حضور ﷺ دخندق دغزاپه ورځ دكفارو سره دجنګ په وجه له څلورو لمونځو څخه مشغول كړى شو (يعني دلمانځه كولو فرصت ئې پيدانه كړ) نوحضور ﷺ بيادهغو قضاء په ترتيب سره راوړه بيا يې وفرمايل چې لمونځ اداء كوئ لكه څرنګه چې تاسي زه وليدم چې زه لمونځ اداء كوم)داستدلال وجه داده چې حضور ﷺ قضاء شوي لمنځو نه په ترتيب سره راوګرځول بيا يې أمر وكړ چې ،صلوا كما رايتموني اصلي ،چې له دي وروسته هم دلمانځه قضاپه دي شان كوى اوأمر دوجوب لپاره دى په دي وجه ترتيب واجب دى .

(٢٧١)دقضايي اووختي لمنځونو په منځ كې ترتيب واجب دى خوداوجوب په يوه له دريو امورو څخه ساقطيږي ،(١)كه وخت تنګ شو اوداويره وه چې كه دفوت شوى لمانځه په قضاء مشغول شم نووخت به ووځي نوپه دي صورت كې دي وختي لمونځ مقدم كړي بيادي له دي وروسته دفوت شوى لمانځه قضاء رواړي ولى كه په دي صورت كې هم ترتيب واجب وبلل شي نو بيابه دوختي لمانځه فوت كيدل لازم شي حال داچې دوختي لمانځه په خپل وخت كې اداء كول په دليل قطعي سره ثابت دي اودقضايي اووختي لمنځونو په منځ كې ترتيب په دليل قطعي سره ثابت نه دى .

(٢)همداشان كه يې فوت شوى لمونځ هيروو اووختي لمونځ يې اداءكړ نوداصحيح ده ولى چې دنسيان په وجه سره ترتيب ساقطيږي همداشان روايت شوى دى چې يوه ورځ حضور ﷺ دماښام لمونځ اداءكړ بيا يې لخ صحابه كرامو ﷺ څخه پوښتنه وكړه چې ايا له تاسو څخه يوه زه دعصر د لمانځه په اداء كولو وليدم ؟صحابه كرامو ﷺ وويل مونږ نه يې ليدلى حضور ﷺ دعصر لمونځ راوګرځوى اودماښام دلمانځه اعاده يې نه وكړه، نومعلومه شوه چې په نسيان سره هم ترتيب ساقطيږي .

(۲۷۲)(۳)قوله وصيرورتها ستا اى ويسقط الترتيب بصيرورة الفائتة ست صلواة .یعنی دریم صورت دادی چې فوت شوی لمنځونه شپږوته ورسیږي نوددوی په منځ کې ترتیب ساقطیږي ولی چې په دي صورت کې فوائت کثیردي نوددفع حرج لپاره ترتیب ساقطیږي لکه څرنګه چې دفوائت کثیره اووختی لمنځونوپه منځ کې ترتیب ساقطیږي .

(۲۷۳)قوله ولم يعد بعودها الى القلة اى لم يعد الترتيب بعود الفوائت الى القلة .یعنی دکثرت فوائت په صورت کې ترتیب ساقطیږي لیکن که یوچا یوڅوفوت شوی لمونځونه راوګرځول نودباقی فوت شویو لمنځونوپه منځ کې ترتیب بیرته راګرځي که یا؟ دځینوحضراتو رأیه داده چې ترتیب بیرته راګرځي مګر صحیح داده چې ترتیب نه راګرځي ولی چې ساقط شوی امربیرته عودنه کوي قال ابوحفص الكبير وعليه الفتوى .كمافي درالمختار (ولايعود)لزوم الترتيب (بعدسقوطه بكثرتها) اى الفوائت (بعود الفوائت الى القلة) بسبب (القضاء) لبعضها على المعتمد لان الساقط لايعود .قال ابن عابدين رح (قوله على المعتمد) هواصح الروايتين وصححه ايضافي الكافي والمحيط وغيره وعليه الفتوى وقيل يعود الترتيب واختاره في الهداية ورده في الكافي والتبيين واطال فيه في البحر (ردالمحتار: ۱\۵۴۰).

(۲۷۴)که دچاپاد وو چې زماپرذمه قضایي لمونځ شته که څه هم وتروي پیاهم هغه وختي لمونځ وکړ نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دده دا لمونځ فاسد موقوف دی یعنی که یې نور پنځه لمنځونه اداء کړل نوبیایې دا ټول لمنځونه صحیح دي اوس دترتیب درعایت نه کولوپه وجه سره چې کوم لمنځونه صحیح فاسدشوي ووهغه صحیح شول دهغوئ قضاء لازمه نه ده ولی چې ددي لمنځونو فساد علت وجوب ترتیب دی اوکله چې دي په همدي شان پنځه لمنځونه اداء کړل نواوس دفوتي لمنځونو تعداد شپږوته ورسید اوپه شپږولمنځونوسره کثرت ثابتیږي اوداوړاندي تیره شوه چې په کثرت فوائت سره ترتیب ساقطیږي اوکله چې ترتیب ساقط شونوټول لمنځونه صحیح شول .

**الالغاز**: أی صلوة أفسدت خمسا؟وأی صلوة صححت خمسا؟

**قل**:رجل ترک صلوة وصلی بعدهاخمسا ذاکراللفائتة ,فان قضی الفائتة فسدت الخمس ,وان صلی السادسة قبل قضاها صحت الخمس.(الاشباه والنظائر)

**ف**:درمضان المبارک په آخری جمعه کې ځنې حضرات دقضاء عمري په نامه دوه رکعته په جماعة سره اداء کوي داداء کونکو ګمان دادی چې د ټول عمرد قضایي لمنځونو ځخه یې ذمه فارغه کیږي دا مروجه قضاء عمري علماء دیوبندپه بدعت سیئه کې شمارکړي ده نوپه دي وجه په دي کې شرکت کول پکارنه دي .(فتاوی حقانیه: ۳\۳۰۱)

**ف**:که یوڅوک احتیاطا قضایي لمنځونه اداء کول وغواړي نو دماښام فرض اودماخستن وتر دي هم څلور رکعته کوي البته دماښام په آخری رکعت کې دي له الحمد لله سره سورة هم وایي اوله دریم رکعت وروسته دي قعده هم کوي اوهمداشان دي دوترو په دریم رکعت کې دعاء قنوت هم وایي .(فتاوی حقانیه: ۳\۳۰۳)

## بَابُ سُجُوْدِ السَّهْوِ

### داباب سجده سهو په بيان كې دى

مصنف رحمه الله داداء اوقضاء له بيان څخه فارغ شو اوس يې دهغه شئ بيان شروع كړ كوم چې په هغوكې دواقع كيدونكى نقصان تلافي كوي يعنى دسجده سهو بيان يې شروع كړ، په سجود السهو كې اضافت له قبيلې داضافت المسبب الى السبب دى ولى چې په لمانځه كې سهو دسجدي دوجوب سبب دى.

(٢٧٥) يَجِبُ بَعْدَ السَّلَامِ سَجْدَتَانِ بِتَشَهُّدٍ وَتَسْلِيمٍ بِتَرْكِ وَاجِبٍ وَإِنْ تَكَرَّرَ (٢٧٦) وَبِسَهْوِ إِمَامِهِ (٢٧٧) لَا بِسَهْوِهِ (٢٧٨) وَإِنْ سَهَا عَنِ الْقُعُودِ الْأَوَّلِ وَهُوَ إِلَيْهِ أَقْرَبُ عَادَ وَإِلَّا لَا وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ (٢٧٩) وَإِنْ سَهَا عَنِ الْأَخِيرِ عَادَ مَا لَمْ يَسْجُدْ وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ

**ترجمه**: واجب دي له سلام څخه وروسته دوه سجدي له تشهد اوسلام سره دترك واجب په وجه سره كه څه هم ترك واجب مكرر شي، اودامام په سهو سره، نه دمقتدى په سهو سره، اوكه يې هيره شوه اوله قعده حال داچې هغه قعود ته نژدي دى نوبيرته دي راوګرځي كه نه نو نه دي راګرځي اوسجده سهو دي وكړي، اوكه يې هيره شوه اخيري قعده نوبيرته دي راوګرځي ترڅو چې سجده ونه كړي اوسجده سهو دي وكړي.

**تشريح**: (٢٧٥) يعنى كه لمونځ كونكي په لمانځه كې دننه كوم واجب فعل ترك كړنوپرده سجده سهو واجبيږي كه څه هم ترك واجب مكرروي يعنى كه سهواً له ده څخه څو واجبات پاتي شي نوهم دسهو دوه سجدي كافي دي اوپرچاچې سجده سهو واجب شوه نوهغه دله سلام څخه وروسته دوي سجدي وكړي بيادتشهد وايي اوسلام دي وګرځوي، لقوله ﷺ من سهى عن الصلوة فليسجد سجدتين (يعنى كوم څوك چې په لمانځه كې سهو شي نوهغه دي دوي سجدي وكړي).

**ف**: په دي خبره خودټولو اتفاق دى چې كه سجده سهو له سلام څخه وړاندي وكړي اوكه وروسته دواړه جائزدي البته په اولويت كې اختلاف دى داحنافو په نزد له سلام څخه وروسته اولى دي، دامام شافعى رحمه الله په نزد له سلام څخه وړاندي اولى ده اودامام مالك رحمه الله په نزد كه له مصلى څخه په لمانځه كې نقصان شوى وي نوله سلام څخه وړاندي دي سجده سهو وكړي اوكه زيادت شوى وي نوله سلام څخه وروسته دي سجده سهو وكړي، زموږدليل دنبى كريم ﷺ ارشاد ﴿لكل سهو سجدتان بعد السلام﴾ (يعنى دهرې سهو لپاره له دوي سجدي دي له سلام څخه وروسته) دى.

**ف**: او په دي كې دعلماكرامو اختلاف دى چې دسجده سهو لپاره به يوه طرف ته سلام ګرځوي اوكه دواړو طرفوته، ځيني حضرات دواړو طرفوته دسلام ګرځولو قائل دي، اوځيني حضرات په دي ډول ديوه سلام قائل دي چې مخ دكعبى له طرف څخه ونه ګرځي اوځيني ښى طرف ته ديوه سلام ګرځولوقائل دي همدا صحيح ده ولى چې دواړو طرفوته دسلام ګرځولوپه صورت كې كه ساهى امام وي نوپه جماعت كې خلل واقع كيږي ولى كوم مقتديان چې مسبوق وي هغوئ به په دي خيال ولاړيږي چې لمونځ مكمل شو. كمافى الهنديه: والصواب ان يسلم تسليمة واحدة وعليه الجمهور (هندية: ١\١٣٥)، وفي ردالمحتار: وفى الحلية اختار الكرخى وفخر الاسلام وشيخ الاسلام وصاحب الايضاح ان يسلم تسليمة واحدة ونص فى المحيط على انه الاصوب وفى الكافى على انه الصواب الخ قلت وعليه فليجب ترك التسليمة الثانية. (ردالمحتار: ١\٥٣٦)

(۲۷۶)قوله وسهو امامه اى يجب على المقتدى بسهو امامه، كه له امام څخه كوم موجب سهو عمل وشونو سجده سهوپرامام هم واجبيږي اوپرمقتدى هم ولى چې پرمقتدى دامام اتباع لازمه ده ولى چې په اقتداء كولوسره ده پرخپل ځان اتباع لازمه كړي ده ،اوكه امام سجده سهوونه كړه نومقتدى به يې هم نه كوي ولى چې يواځې مقتدى سجده سهوكوي نوله امام څخه مخالفت لازميږي حال داچې ده دامام په متابعت كې دلمانځه اداء كولو التزام كړى وو.

(۲۷۷)قوله لابسهوه اى لايجب السجدة بسهو المقتدى ،يعنى كه له مقتدى څخه داقتداء په حالت كې كوم موجب سهوعمل وشونودي په وجه سره نه پرامام سجده سهولازميږي اوپرمقتدى ولى چې يواځې مقتدى سجده سهوكوي نوله امام څخه مخالفت راځي اوكه امام هم له ده سره سجده سهوكوي نوداصل تابع والى لازميږي يعنى امام كوم چې اصل ووهغه به تابع شي اومقتدى كوم چې تابع ووهغه به اصل شي .

(۲۷۸)يعنى كه چا په څلور ركعتي يادري ركعتي فرض لمنځونو كې اوله قعده پريښوده اوبيا ورياد شوه نو دوه صورتونه دي (۱)يابه داكس قعود(ناستي )ته ډيرنژدي وي په دې ډول چې ده به خپل زنګنونه له ځمكې څخه نه وي اوچت كړي اويابه قيام ته ډيرنژدي وي په دې ډول چې ده خپل زنګنونه اوچت كړي وي نوكه اول صورت وي نوبيرته دې كښيني اوتشهد دې ووايې ولى چې قريب الشئ دشئ په حكم كې وي اوپه دې صورت كې داصح قول مطابق پرده سجده سهونشته . كمافى ردالمحتار: ۱\۵۵۰.يعنى اذاعادقبل ان يستقيم قائما وكان فى القعود اقرب فانه لاسجود عليه فى الاصح وعليه الاكثر واما اذاعاد وهو الى القيام اقرب فعليه سجود السهو .اوكه دوهم صورت وو نونه دي راګرځي بلكه دريم ركعت ته دې ولاړشي ولى چې قريب الشئ دشي حكم اخلي ،بس په دوهم صورت كې پر ده سجده سهو واجب ده ولى چې واجب يعنى قعده اولى يې ترك كړي ده.

ف:دبعض علماؤ رأيه داده چې ترڅو پوري دلمونځ كونكى نصف اسفل (يعنى لاندې نيمه حصه ) سيده نه وي نوقعود ته ډيرنژدې دى اوكله چې نصف اسفل سيده شي نوهغه قيام ته ډيرنژدې شمارل كيږي دنصف اعلى اعتبارنشته ،ظاهرالرواية اوراجح داده چې ترڅوچې بالكل سيده ونه دريږي نوقعود طرف ته دې بيرته عود وكړي اوكه بالكل سيده ودريدى نوبيادې نه راګرځي ،باقي دسجدې مدارپرقرب اوعدم قرب باندې دى يعنى قعودته دقريب والى په صورت كې په راګرځيدونكى سجده سهونشته اوقيام دنژدې والى په صورت كې سجده سهولازمه ده لمافى حاشية الطحطاوى:(قوله وهو الى القيام اقرب الخ)ظاهره انه ان لم يستو قائمايجب عليه العود،لم يفصل فى سجود السهو فان كان الى القيام اقرب سجد له ،وان كان الى القعود اقرب لا ،فحكم السجود متعلق بالقرب وعدمه ،وحكم العود متعلق بالاستواء وعدمه (حاشية الطحطاوى :ص ۳۸).وقال الشيخ عبد الحكيم الشاه ولى كوټى الشهيد رح:والصحيح الراجح عند المحققين ماقال فى الدر المختار ونور الايضاح حيث قال وان سهاعن القعود الاول من الفرض ثم تذكر عاد اليه مالم يستقم قائمافى ظاهر المذهب وهو الاصح وان استقام قائما فلايعود ويسجد للسهو والحاصل انه يعود سواء كان اقرب الى القعود اوالى القيام لكن يجب عليه سجود السهو فى الثانى ولايجب فى صورة الاولى وعليه المشى فى نور الايضاح والتنوير والمواهب والبرهان وتصريح الحديث الذى ذكر ابو داؤد .(هامش الهداية: ۱\۱۴۱)

(۲۷۹)يعنى كه يو چا قعده اخيره پريښوده مثلا په څلور ركعتي لمانځه كې پنځم ركعت ته ولاړشو نوترڅوپوري چې يې پنځم ركعت په سجده سره مقيد كړى نه وي قعدې ته دې بيرته راوګرځي ولى چې

دقعدي طرف ته په بیرته راګرځیدلو کې ده دلمانځه اصلاح ده او ده لره دلمانځه اصلاح ممکنه هم ده په دې وجه چې تریوه رکعت په کم لمانځه پرېښودلو کې څه مضائقه نشته ،او پنځم رکعت دي کړي ولې چې دا شخص دقعدي طرف ته راګرځیدلی دی دکومي چې محل تر پنځم رکعت مقدم دی او قاعده ده چې لمونځ کونکی په لمانځه کې له یو فعل څه هغه فعل ته راو ګرځي چې هغه تر مرجوع عنه مقدم وي نو مرجوع عنه فعل لغو کیږي ،او په اخرکې دي سجده سهو وکړي ولې چې ده فرض عمل یعني قعده آخره مؤخره کړي ده .

(۲۸۰) فَإِنْ سَجَدَ بَطَلَ فَرْضُهُ بِرَفْعِهِ وَصَارَتْ نَفْلًا فَيَضُمُّ إِلَيْهَا سَادِسَةً (۲۸۱) وَإِنْ قَعَدَ فِي الرَّابِعَةِ ثُمَّ قَامَ يَظُنُّهَا الْقَعْدَةَ الْأُولَى عَادَ وَسَلَّمَ (۲۸۲) وَإِنْ سَجَدَ لِلْخَامِسَةِ تَمَّ فَرْضُهُ وَضَمَّ إِلَيْهَا سَادِسَةً لِتَصِيرَ الرَّكْعَتَانِ لَهُ نَفْلًا وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ

**ترجمه** :او که یې سجده وکړه نو باطلیږي دده فرض لمونځ له سجدي څخه دسر په اوچتولو سره او نفل ګرځي نو یو ځای دي کړي شپږم رکعت ،او که کښینستی په څلورم رکعت بیا ولاړشو نو راو دي ګرځي او سلام دي وګرځوي ،او که یې سجده وکړه دپنځم رکعت نو پوره شول دده فرض او یو ځای دي کړي له هغه سره شپږم رکعت تر څو ده وه رکعته نفل شي او سجده سهو دي وکړي .

**تشریح** :(۲۸۰) او که یې پنځم رکعت په سجده سره مقید کړ نو د امام محمد رحمه الله په نزد څرنګه چې دی له سجدي څخه سر اوچت کړي نو دده فرض باطلیږي ولې چې دفرض لمانځه دارکانو له پوره کولو وړاندي دي کس په نفلو شروع وکړه دکوم لپاره چې له فرضو څخه خروج لازمي دی او دارکانو له پوره کولو وړاندي په خروج عن الفرض سره لمونځ فاسدیږي. او دشیخینو رحمهما الله په نزد دا لمونځ نفل ګرځي لهذا دلمونځ کونکې لپاره مستحب ده چې له دي سره شپږم رکعت یو ځای کړي که څه هم دعصر لمونځ وي ،تر څو دا کس دطاق رکعتونفلو اداء کونکی نه شي ولې چې طاق رکعتونه نفل مشروع نه دي .

**ف**:او که یې شپږم رکعت ورسره یو ځای نه کړ نو پر ده هیڅ نشته ولې چې دا قصداً په پنځم رکعت کې شروع نه ده شوي لهذا پرده اتمام لازم نه دی ،او اصح داده چې پرده سجده سهو نشته ولې چې دفساد په شان نقصان جبیره په سجده سهو سره نه کیږي کما في الدر المختار :ولا یسجد للسهو علی الاصح لان النقصان بالفساد لا ینجبر (الدر المختار علی هامش رد المحتار: ۱\۵۵۲)

(۲۸۱) او که په څلورم رکعت باندي په قدر دتشهد کښینستی بیا دسلام ګرځولو پر ځای پنځم رکعت ته ولاړشو نو تر څو چې یې پنځم رکعت په سجده سره مقید کړی نه وي بیرته دي قعدي ته راوګرځي ولې چې دده پرذمه سلام پاتي دی او دقیام په حالت کې سلام مشروع نه دی ،او په مشروع طریقه سره سلام ګرځول ممکن دي په دي دول چې دقعدي لورته بیرته راو ګرځي لهذا دقعدي طرف ته راګرځیدل ضروري دي لیکن دقعدي طرف ته له راګرځیدلو وروسته دي دتشهد اعاده نه کوي بلکه دتاخیر سلام په وجه سره دي سجده سهو وکړي او سلام دي وګرځوي .

(۲۸۲) او که په مذکوره بالا صورت کې یې پنځم رکعت په سجده سره مقید کړ نو استحباباً دي له دي سره شپږم رکعت یو ځای کړي ولې چې طاق رکعت نفل اداء کول مکروه دي ،او دده فرض پوره شول ولې چې اخیري قعده په خپل محل کې موجوده شوه صرف دتاخیر سلام په وجه سره سجده سهو واجبیږي او اخیري

دوه رکعته نفل کيږي ،دامام شافعي رحمه الله په نزدده لمونځ پوره شوی نه دی بلکه قعودته دي بيرته راوګرځي اوسلام دي وګرځوي ولی چې سلام ګرځول دده په نزدفرض دي .

(۲۸۳)وَلَوْ سَجَدَ لِلسَّهْوِ فِي شَفْعِ التَّطَوُّعِ لَمْ يَبْنِ شَفْعًا آخَرَ عَلَيْهِ (۲۸۴)وَلَوْ سَلَّمَ السَّاهِي فَاقْتَدَى بِهِ غَيْرُهُ فَإِنْ سَجَدَ صَحَّ وَإِلَّا لَا (۲۸۵)وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ وَإِنْ سَلَّمَ لِلْقَطْعِ

**ترجمه**:اوكه چاسجده سهو وكړه دنفلوپه دوو ركعتوكې نوبناء دي نه كوي دنورودوو ركعتوپردوئ ،او كه سلام وګرځاوه دهيري والايبا په ده پسي اقتداء وكړه يو چانو كه ده سجده سهو وكړه نو اقتداء صحيح ده كه نه نو صحيح نه ده ،اوسجده سهو دي وكړي كه څه هم يې سلام ګرځولی وي دقطع لمانځه په نيت سره .

**تشريح** :(۲۸۳)كه څوک په دوه ركعته نفلو كې سهو شو اوپه اخيركې سجده سهو هم وكړه نو اوس دي پرهغو دوركعتو دمزيدونفلوبناء نه كوي ،بلكه كه نفل اداء كوي نودهغه لپاره دي مستقله تحريمه وكړي ولی چې دبناء په صورت كې سجده سهو باطليږي ولی چې دلمانځه په منځ كې كيږي حال داچې سجده سهو دلمانځه په اخيركې وي.

(۲۸۴)كه دامام پرذمه سجده سهو واجب وه هغه (يعني امام )سلام وګرځوی په دي وخت كې يو بل كس په امام پسې اقتداء وكړه نوكه امام سجده سهو وكړه نوددي بل كس اقتداء صحيح شوه ولی چې تراوسه پوري دامام لمونځ باقي دی اوكه امام سلام وګرځوی اوسجده سهو يې نه وكړه بلكه هغه يې دتحليل سلام وګرځوی نودهغه اقتداء صحيح نه ده ولی چې امام دسلام ګرځولو په وجه له لمانځه څخه خارج شو لهذا اوس دهغه اقتداءكول صحيح نه دي.

(۲۸۵)كه دچاپر ذمه سجده سهو وي ده دلمانځه دختمولو لپاره سلام وګرځوی نواوس دي هم سجده سهو وكړي ولی چې سجده سهو دده په ذمه لازمه ده ولی چې پر چاسجده سهو لازمه وي نو دهغه سلام بالاتفاق دلمانځه قاطع نه دی په دي شرط چې له قبلي يې مخ ونه ګرځوي اوخبري ونه كړي ولی چې دا سلام قاطع كونكی نه دی مشروع شوی او كوم شئ چې قاطع كونكی نه وي مشروع شوی هغه لمونځ نه قطع كوي لهذاده نيت لغودی كمافي تنوير الابصار :وسجد للسهو ولو مع سلامه للقطع ما لم يتحول عن القبلة او يتكلم لبطلان التحريمة (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار: ۱\۵۵۵)

**ف**:كه امام په دي ګمان سجده سهو وكړه چې پرده سجده سهو واجب ده وروسته معلومه شوه چې سجده سهو واجب نه وه، نوداصل قاعدي مطابق دمسبوق لمونځ فاسديږي مګرپه ائمه مساجدوكې دغلبه جهل په وجه سره دعدم فساد فتوی ده، په دي وجه كه مسبوق په داسې صورت خبرشي نوخپل لمونځ دي راوګرځوي.(احسن الفتاوی،۴\۲۸.و الشامی،۱\۵۶۰)

(۲۸۶)وَإِنْ شَكَّ أَنَّهُ كَمْ صَلَّى أَوَّلَ مَرَّةٍ اسْتَأْنَفَ (۲۸۷)وَإِنْ كَثُرَ تَحَرَّى وَإِلَّا أَخَذَ بِالْأَقَلِّ (۲۸۸)وَلَوْ تَوَهَّمَ مُصَلِّي الظُّهْرِ أَنَّهُ أَتَمَّهَا فَسَلَّمَ ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ أَتَمَّهَا وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ

**ترجمه**:كه لمونځ كونكی ته په لمانځه كې شک پيداشو چې څوركعته مې اداء كړي دي اودالومړی ځل وونوله سره دي لمونځ وكړي ،اوكه شک ډيرپيښيد ونوتحری دي وكړي كه نه نو اقل دي اخلي ،وهم

پیدا شو د ماپښین د لمانځه اداء کونکی ته چې ده لمونځ پوره کړی دی نو ده سلام وګرځاوو بیا ورته معلومه شوه چې ده دوه رکعته اداء کړي دي نو پوره دي کړي او سجده سهو دي وکړي.

**تشریح:** (۲۸۶) که لمونځ کونکی ته په لمانځه کې شک پیدا شو چې درې رکعته شوي دي او که څلور او دا لومړی ځل وُ چې ده شک پیدا شوی وو یعنی سهو د ده عادت نه وه نو په دې صورت کې دې کښیني سلام دې وګرځوي او له سره دې د لمانځه اعاده وکړي، لِقَولِهٖ صلی الله علیه وسلم ﴿وإذا شكّ أحدكم في صلاتِه أنّه كم صلّى فليستقبل الصّلاة﴾ (که په تاسو کې یوه ته په لمانځه کې شک پیدا شو چې څو رکعته مې کړي دي نو هغه دې لمونځ له سره راوګرځوي).

**ف:** دا په هغه صورت کې ده چې لمونځ کونکی له لمانځه څخه فارغ شوی نه وي او که له لمانځه څخه د فارغیدلو وروسته یا بقدر تشهد له کښینستلو وروسته دا شک پیدا شو نو د ده پر ذمه هیڅ نشته که څه هم له سلام ګرځولو وړاندې وي، هو که ده ته یو عادل کس وویل چې تا د ماپښین لمونځ څلور رکعته نه دی کړی او دی د هغه په صدق او کذب کې شکمن شو نو احتیاطا دې لمونځ راوګرځوي. کما في الشامیه (قوله في صلوته) قال في فتح القدیر قید به لانه لو شک بعد الفراغ منها او بعد ما قعد قدر التشهد لا یعتبر ............... نعم یستثنی ما في الخلاصة لو اخبره عدل بعد السلام انک صلیت الظهر ثلاثا وشک في صدقه یعید احتیاطا (رد المحتار: ۱\۵۵۷).

(۲۸۷) او که لمونځ کونکی ته په کثرت سره شک پیښیدی نو د دې دوه صورتونه دي یا خو به دا کس په غور او فکر کولو سره کوم یوه طرف ته ترجیح ورکولی شي او یا به یې نه شي کولی که ده یوه طرف ته ترجیح ورکړه او د هغه په باره کې یې ظن غالب هم وو نو د ظن غالب مطابق عمل دې وکړي. لِقَولِهٖ صلی الله علیه وسلم ﴿من شكّ في صلاتِه فليتحرّ الصّواب﴾ (که یو چا ته په لمانځه کې شک پیدا شو نو هغه دې د صواب په باره کې غور او فکر وکړي) د دې او مخکښې روایت په منځ کې څه تعارض نشته ولی چې هغه مخکښی روایت په هغه صورت محمول دی چې لمونځ کونکی ته په لومړي ځل شک پیدا شوی وي او دا روایت په هغه صورت محمول دی چې لمونځ کونکی ته په لمانځ کې ډیر ځله شک پیښیږي، همدا شان په کثرت سره د عروض شک په صورت کې په له سره راګرځیدلو کې حرج دی، او که یې له فکرا و غور کولو وروسته هم یوه طرف ته ترجیح نه شوای ورکولی نو بیا دې په هغه یقیني یعنی اقل باندې عمل وکړي نو که په څلورو او درو رکعتو کې شک وونو درې دې اختیار کړي ولی چې همدا متقین دي.

(۲۸۸) که یو څوک د ماپښین په لمانځه کې په دوو رکعتو باندې کښیني بیا د هغه دا خیال شو چې ما څلور رکعته کړي دي نو ده سلام وګرځوی بیا هغه ته معلومه شوه چې دوه رکعته یې اداء کړي دي نو که ده له سلام ګرځولو وروسته داسې عمل نه وو کړی چې په هغه لمونځ فاسدیږي نو اوس دې دوه رکعته نور له دې سره یو ځای کړي او لمونځ دې پوره کړي په آخیر کې دې سجده سهو وکړي ولی چې په هیره سره سلام ګرځول قاطع الصلوة نه دی په دې وجه چې سلام من وجه دعاء ده، البته که ده داسې عمل وکړ چې په هغه سره لمونځ فاسدیږي نو بیا دې بیرته لمونځ راوګرځوي ولی چې کوم دوه رکعته یې کړې وو هغه د قاطع الصلوة عمل په وجه سره فاسد شول. کما في تنویر الابصار: سلم مصلي الظهر مثلا علی راس الرکعتین توهما اتمامها اتمها اربعا وسجد للسهو لان السلام ساهیا لا یبطل لانه دعاء من وجه (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار: ۱\۵۵۲)

ف: مسبوق دې دسجده سهو په سلام کې دامام متابعت نه کوي بلکه بغیرله سلامه دې سجده سهو وکړي که مسبوق سلام وګرځوی په داسې حال کې چې دایې هم په یادوو چې زه مسبوق یم یعنی داورته یادوو چې دده پر ذمه دلمانځه یوڅه حصه پاتې ده نو دده لمونځ فاسدیږي البته که یې سهوا سلام وګرځوی یعنی دایې نه وه یاد چې دی مسبوق دی نو لمونځ یې نه فاسدیږي که یې خپل مسبوقیت یادوو مګر ددې مسئلې دعدم علم په وجه سره یې سلام وګرځوی نوبیا هم لمونځ ختمیږي ولی چې جهالت عذرنه دی (احسن الفتاوی ۲۴\۴) اوپه کوم صورت کې چې مسبوق سهواً سلام وګرځوي (یعنی دایې نه وه په یاد چې دی مسبوق دی )که دامام دلفظ سلام دمیم سره مسبوق هم دسلام لفظ میم ووایو نو سجده سهو نشته لیکن عموما دمقتدې سلام دامام له سلام څخه وروسته وي نوپه دې وجه سجده سهو لازمه ده. (احسن الفتاوی:۲۸\۴)

## بَابُ صَلَاةِ الْمَرِيضِ

داباب دمریض دلمانځه په بیان کې دی

مصنف رحمه الله دمریض دلمانځه ذکرله سجده سهو وروسته په دې وجه کړی دی چې مرض اوسهو دواړه له عوارضو سماویه څخه دي څرنګه چې سجده سهو عامه ده مریض اوغیرمریض دواړو ته عارضیږي نوپه دې وجه یې دسجده سهو بیان مقدم کړ،اوپه صلاة المریض کې اضافت له قبیلې داضافة الفعل الی فاعله دی یاله قبیلې داضافة المصدر الی فاعله دی.مرض په معنی دسقم دی علامه عینی رحمه الله فرمایې چې مرض هغه معنی ده چې دژوندي په بدن کې په حلول کولو سره دهغه دطبائعو اربعة و اعتدال خرابیږي.

(۲۸۹)من تَعَذَّرَ عليه القِيامُ او خافَ زِيادَةَ المَرَضِ صلى قاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ (۲۹۰) او مومِيًا اِنْ تَعَذَّرَ وَجَعَلَ سُجُودَهُ اَخْفَضَ (۲۹۱) وَلَا يَرْفَعُ اِلَى وَجْهِهِ شَيْئًا يَسْجُدُ عليه فَاِنْ فَعَلَ وهو يَخْفِضُ رَأْسَهُ صَحَّ وَاِلَّا لَا (۲۹۲) وَاِنْ تَعَذَّرَ الْقُعُودُ اَوْمَأَ مُسْتَلْقِيًا او على جَنْبِهِ (۲۹۳) وَاِلَّا اُخِّرَتْ ولم يومِ بِعَيْنَيْهِ وَقَلْبِهِ وَحَاجِبَيْهِ

**ترجمه** :دکوم چالپاره چې مشکل وي دریدل یاده لره خوف وي دمرض دزیاتوالی نولمونځ دې اداء کړي په ناسته سره په رکوع اوسجده ،یاپه اشاره سره که رکوع اوسجده هم مشکل وي اوسجده دې له رکوع څخه ډیره کښته کړي ،اونه دې اوچتوي خپل مخ ته یوشئ چې په هغه سجده وکړي اوکه ده داسې وکړل اوحال داچې ده په سجده کې سرډیرکښته کړنوبیاهم صحیح ده که نه نو نه ده ،اوکه مشکله شوه ناسته نواشاره دې وکړي په ستوني ستغ څملستلوسره یاپه اړخ څملستلوسره ،کنه لمونځ دې مؤخرکړای شي اواشاره دې نه کوي په سترګوسره ،په زړه سره اوپه وریځوسره .

**تشریح**:(۲۸۹)که مریض په ولاړه سره دلمانځه په اداء کولو قادرنه وي یاقادرخووي مګردضررخطره وي په دې دول سره چې دناروغي دزیاتیدلو ویره وي نوپه ناسته دې په رکوع اوسجده سره لمونځ اداء کړي ولی چې طاعت دطاقت په اندازه وي .

ف: داحکم په هغه وخت کې هم دی چې په ولاړه سره دلمانځه په اداء کولو کې دناروغي داوږدوالی ویره وي یادروغتیادځنډویره وي که یې خپله تجربه وي اویاکه کوم پوه طبیب ورته ووایې یایې سرګرځي یادقیام په

وجه سره شدید دردمومي کمافي شرح التنویر (اوخاف زیادته اوبطء برئه بقیامه اودوران رأسه اووجدلقیامه الماشدیدا) قال ابن عابدین (قوله خاف) ای غلب علی ظنه بتجربة سابقة او اخبار طبیب مسلم حاذق (ردالمحتار: ١\٥٩٢)

(٢٩٠) قوله مؤمیا ان تعذر ای صلی مؤمیا ان تعذر الرکوع اوالسجود. یعنی که یې درکوع اوسجدي کولو قدرت نه درلود نوبیا دي رکوع اوسجده په اشاره سره اداءکړي لمانځ. البته د سجدي داشاري پروخت دي سرپه نسبت درکوع اشاري ته ډیرکښته کوي ولی چې اشاره درکوع اوسجدي قائم مقامه ده لهذا دسجدي اورکوع په حکم کې به وي.

(٢٩١) مګریو شی بالښت وغیره تندي ته په راپورته کولو سره دي په هغه سجده نه کوي ولی چې نبی کریم ﷺ له دي څخه منع فرمایلي ده لهذاکوم شئ دسرطرف ته پورته کول مکروه تحریمي ده. که چا یې هم داسې وکړل چې بالښت وغیره یې پورته کړاوپه هغه یې سجده وکړه نوکه په سجده اورکوع کې سرکښته کیدونوصحیح ده ولی چې اشاره متحققه شوه. قوله والا ای ان لم یخفض رأسه بل وضع المرفوع علی وجهه فلایصح. یعنی که سرنه کښته کیدوبلکه صرف یې هغه شی په تندي کښینودپرکوم چې سجده کوي نوصحیح نه ده ولی چې اشاره متحققه نه شوه.

ف: او که بالښت وغیره پر ځمکه ایښی وي اولمونځ کونکی دعذر په وجه پر هغه سجده کوي نوبیا بلاکرهت جائزده، کمافي الشامیه (قوله ولایرفع الی وجهه شیأیسجدعلیه فانه یکره تحریما) اقول هذامحمول علی ماذا کان یحمل الی وجهه شیأیسجدعلیه الخ فان کانت الوسادة موضوعة علی الارض وکان یسجدعلیها جازت صلوته (ردالمحتار: ١\٥٢١)

(٢٩٢) که مریض پرناسته هم قدرت نه درلود که یې حقیقة نه درلوداو که یې حکمانه درلودیعنی په ناسته سره د مرض د زیاتیدلو یا اوږدیدلو ویره وه نوپرخپله شادي څملي یعنی ستونی ستغ اولمونځ دي اداء کړي اوترسرلاندي دي بالښت کښیږدي ترڅو اشاره ممکنه وي اوپښي د دقبلي طرف ته کړي که کیدای شي نوزنګنونه دي ودروي پښي دي نه غځوي ترڅودقبلي طرف ته دپښو له غځولو څخه وساتل شي. او که مریض په اړخ څملاست او په اشاره سره یې لمونځ اداء کړي په دي ډول چې دده مخ دقبلي طرف ته وي نو هم جائزدی ﴿لحدیث عمران بن حصین ﷺ قال کانت بی بواسیر فسألت النبی ﷺ عن الصلوة فقال ﷺ صلّ قائما فان لم تستطع فقاعدا فان لم تستطع فعلی جنبک﴾ (یعنی عمران بن حصین ﷺ فرمایي زمادبواسیرو مرض وو نو مادلمانځه په باره کې له حضور ﷺ څخه پوښتنه وکړه نو حضور ﷺ راته وفرمایل چې په ولاړه یې وکړه بیاکه دي دولاړي قدرت نه وو نو بیا یې په ناسته سره او که ددي استطاعت نه وونو بیا په اړخ په څملستلو سره لمونځ اداء کړه) همداشان داوجه هم ده چې انسان دخپل طاقت په اندازه په طاعت مکلف وي.

ف: لیکن په مذکوره دوصورتونوکي اول صورت اولی دی ولی چې دستوني ستغ والاسجده داسمان طرف ته وي اوکعبه تراسمانه پوري ټولي فضاء ته شامله ده، په خلاف داړخ څملستونکي چې دهغه سجده دپښوطرف ته وي کمافي الشامیة (قوله والاول افضل (لان المستلقی یقع ایمائه الی القبلة والمضطجع یقع منحرفاعنها وبه ورد الاثر. (ردالمحتار: ١\٥٢٢)

(٢٩٣) قوله والااخرت ولم یوم بعینه وقلبه وحاجبیه ای وان لم یستطع الایماء براسه اخرت عنه الصلوة ولم یوم بعینه وقلبه وحاجبیه، یعنی که مرض دومره زیات شوچې په سرداشاري کولوقدرت هم پاتي نه شونولمونځ دي

مؤخركړاى شي ليكن په سترګو ،زړه اووريزوسره اشاره كول كافى نه ده ولى چې اشاره په حقيقت كې دركوع اوسجدي بدل ده اوبدل په رأيه اوقياس سره مقررول ممنوع دى اوپه حديث شريف كې صرف په سرسره داشاري ذكردى نه دسترګو وغيره داشاري.

ف: مصنف رحمه الله په لفظ آخرت سره اشاره وكړه چې لمونځ له ده څخه نه ساقطيږي بلكه قضاء به يې راوړي كه څه هم لمونځونه زيات وي په دې شرط چې دده هوش اوحواس سم وي حال داچې دځينو حضراتو په نزدكه تريوي ورځې اوشپې زيات لمونځونه دعذرپه وجه سره قضاء شول نوقضاء لازمه نه ده همداصحيح ده اوپرهمدي فتوى ده كمافى الدر المختار: وان تعذر الايماء براسه وكثرت الفوائت بان زادت على يوم وليلة وسقط القضاء عنه وان كان يفهم فى ظاهر الرواية وعليه الفتوى ,فى ردالمحتار: فصحح الاول كعامة اهل الترجيح كقاضى خان وصاحب المحيط وشيخ الاسلام وفخر الاسلام ومال اليه المحقق ابن الهمام ومشى عليه المصنف لانه ظاهر الرواية. (الدرالمختار على هامش الشامية: ۵۶۲/۱)

ف: دلمانځه وخت تنګيږي نودويده كس راويښول واجب دي البته كه داكس مريض وواوپه راويښولو كې دتكليف خطره وه نوراويښول واجب نه دي .(احسن الفتاوى: ۳/۲۴)

(۲۹۴)وَإِنْ تَعَذَّرَ الرُّكُوعُ وَالسُّجُودُ لَا الْقِيَامُ أَوْمَأَ قَاعِدًا (۲۹۵)وَلَوْ مَرِضَ فِي صَلَاتِهِ يُتِمُّ بِمَا قَدَرَ (۲۹۶)وَلَوْ صلى قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ فَصَحَّ بَنَى (۲۹۷)وَلَوْ كَانَ مُومِيًا لَا

ترجمه :اوكه سخته شوه ركوع اوسجده نه قيام نوپه اشاره سره دې وكړي په ناسته ،اوكه څوک مريض شي په لمانځه كې نو (څرنګه چې ممكنه وي )لمونځ دې پوره كړي ،اوكه يې لمونځ كوى په ناسته سره بيا روغ شونوبناء دې وكړي ،اوكه اشاره كونكى وونوبناء دې نه كوي.

تشريح :(۲۹۴)كه څوک داسې ناروغ شي چې پرقيام خوقادروي ليكن په ركوع اوسجده كولو قادرنه وي نوپرده قيام لازم نه ده بلكه دى دې په ناسته په اشاره سره لمونځ اداء كړي ولى چې قيام په دې وجه ركن دى چې دركوع اوسجدې كولو وسيله وي نوقيام دركوع اوسجدې تابع دى نوكله چې له قيام څخه وروسته ركوع اوسجده نه وي نوهغه قيام به ركن هم نه وي.

ف: دامام زفراوامام شافعى رحمه الله په نزدبه داكس په ولاړه سره په اشاره لمونځ كوي ولى چې دركوع اوسجدې دساقطيدلو په وجه قيام نه ساقطيږي ولى چې له يوه ركن څخه دعاجزوالى په وجه بل ركن نه ساقطيږي ،اختلاف په اولويت كې دى لهذا داحنافو په نزدددې كس په ولاړه سره په اشاره لمونځ اداء كول هم جائزدى ليكن په ناسته سره اشاره كول څرنګه چې اشبه بالسجود دى ولى چې په ناسته سره په اشاره كولو كې سرځمكې ته ډيرنږدې وي په ولاړه تراشاري كولو څخه په دې وجه افضل دى.

(۲۹۵)كه روغ كس دلمانځه يوه حصه په ولاړه اداء كړه بيادلمانځه په منځ كې داسې مرض ورپيښ شونوڅرنګه چې يې قدرت وي لمونځ دې پوره كړي اول خودې كښيني اوپه ركوع اوسجده سره دې لمونځ پوره كړي اوكه يې دركوع اوسجدې قدرت هم نه وونودركوع اوسجدې اشاره دې وكړي اوكه يې په ناسته هم قدرت نه شوپاتې نوپه سيده پريوتلو دې لمونځ پوره كړي ولى چې په دې دري واړه صورتونو كې دادنى حالت بناء پراعلى كړل شوي ده نوداجائزده لكه چې دادنى حال والاقتداء چې په اعلى حال والاپسې جائزده

**ف**:له امام ابوحنيفه رحمه الله څخه يو روايت دادى چې په دلمانځه په منځ کې دناروغې ورپېښېدونکى کس دې له سره بيرته لمونځ اداء کړي ولې چې دده تحريمه داسې منعقده شوې ده چې رکوع اوسجده واجبونکې ده نوله رکوع اوسجدې څخه بغير جائزنه ده .مګرقول اول ډيرصحيح دى ولې چې بعض لمونځ په رکوع اوسجده اوبعض لمونځ په اشاره سره کول اولى دى له دې څخه چې ټول لمونځ په اشاره سره اداء کړي كمافى الشامية:(قوله على المعتمد)وعن الامام انه يستقبل لان تحريمته انعقدت موجبة للركوع والسجود فلاتجوز بالايماء قال فى النهر والصحيح المشهور هو الاول لان بناء الضعيف على القوى اولى من الاتيان بالكل ضعيفا (ردالمحتار: ١/٥٦٣)

(٢٩٦)كه چادمرض په وجه په ناسته دلمانځه يوه حصه په رکوع اوسجده سره اداء کړه بيا دلمانځه په منځ کې روغ شواوپه ولاړه قادرشونودشيخينوپه نزدپه ولاړه سره پرخپل لمانځه بناء وکړي ولې چې دلمانځه داخيري حصې بناء پراوله حصه داسې ده لکه دمقتدى دلمانځه بناء دامام پرلمانځه باندې نوچيرته چې اقتداء صحيح وي هلته به بناء هم صحيح وي نوڅرنګه چې دشيخينوپه نزدقائم اقتداء په قاعدپسې صحيح ده نودحالت قيام دلمانځه بناء دحالت قعودپه لمانځه باندې هم صحيح ده،دشيخينوقول راجح دى كمافى الدرالمختار:ولوصلى قاعدابركوع وسجودفصح بنى (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار: ١/٥٦٣)

**ف**:دامام محمد رحمه الله په نزدداکس په ولاړه سره بناء نه شې کولى بلکه له سره به بيرته لمونځ اداء کوي وجه يې داده چې دامام محمد رحمه الله په نزدقائم اقتداء په قاعدپسې صحيح نه ده نودحالت قيام دلمانځه بناء هم دحالت قعودپرلمانځه صحيح نه ده .

(٢٩٧)قوله ولوكان مؤميالااى ولوكان المريض مؤميالاللركوع والسجودلم صح لايبنى بل يستانف،يعنى كه کوم مريض دلمانځه يوه حصه په اشاره سره اداءکړه بيادلمانځه په منځ کې پررکوع اوسجده قادرشونودائمه ثلاثه په نزدبه.داکس له سره بيرته لمونځ اداء کوي ولې چې درکوع اوسجده کونکى اقتداء په اشاره کونکى پسې صحيح نه ده ولې چې په دې کې دقوى بناء پرضعيف لازميږي نوپه اشاره سره داداء شوي لمانځه بناء هم پررکوع اوسجده والالمانځه باندې صحيح نه دى.

**ف**:که له کوم چاڅخه لمونځ قضاء کيدواودکمزورې په وجه يې اداء نه کړاى شونوپه ژوندکې کفاره نه شي اداء کولى بلکه څرنګه چې وي قضاء دې راوړي که دريدلى نه شواى نوپه ناسته ياپريوتلوڅرنګه چې يې قدرت وي که يې يوقسم هم اداء نه کړنودمرګ پروخت وصيت لازم دى له يوه ثلث ترکه څخه به فديه ورکول کيږي .(فتاوى محموديه ٧/٥٦٧)

(٢٩٨)وَلِلْمُتَطَوِّعِ أَنْ يَتَّكِئَ عَلَى شَيْءٍ إِنْ أَعْيَا (٢٩٩)وَلَوْ صَلَّى فِي الْفُلْكِ قَاعِدًا بِلَا عُذْرٍ صَحَّ (٣٠٠)وَمَنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ أَوْ جُنَّ خَمْسَ صَلَوَاتٍ قَضَى وَلَوْ أَكْثَرَ لَا

**ترجمه** :اونفل اداء کونکى لره جائزده چې تکيه وکړي پريوشي باندې که ستړى شوى وي ،اوکه يې لمونځ اداء کړپه کشتۍ کې په ناسته سره بلاعذره نوصحيح دى،اوکوم کس چې بې هوشه شي ياليونى شي ترپنځو لمونځونوپورې نوقضاء دې راوړي اوکه له پنځولمونځونو څخه زيات وي نوقضاء دې نه راوړي.

**تشريح** :(٢٩٨)که نفل کونکى دنفل لمانځه په اداء کولوسره ستړى شونوده لره په کوم شي تکيه لګول جائزده ولې چې داعذردى اوکه يې دتکيه لګولولپاره کوم شئ ونه موندنوبيادې کښيني ،اوکه يې بلاعذره

تکیه ولګوله نومکروه ده ولې چې بلاعذره تکیه لګول بې ادبي ده ،البته کراهت تنزیهي دی تحریمي نه دی کمافي الشامية:لمافيه من اساءة ادب و ظاهره انه ليس فيه نهي خاص فتكون الكراهة تنزيهية (ردالمحتار: ۱/۵۶۳)

(۲۹۹)که چاپه کښتۍ کې بلاعذره په ناسته لمونځ اداء کړنودامام صاحب په نزددا جائزدی حال داچې دصاحبینوپه نزدجائزنه دی ولې چې قیام په لمانځه کې رکن دی اوقدرت موجوددی لهذاقیام پرېښودل جائزنه دی ،دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادی چې په کښتۍ کې دوران راس غالب دی غالب کالمتحقق دی ،هوپه ولاړه سره دامام صاحب په نزدهم افضل دی لانه ابعد عن شبهة الخلاف.

ف:دصاحبینوقول راجح دی کمافي الدرالمختار:صلى الفرض في فلك جار قاعدا بلاعذر صح لغلبة العجز واساء وقالا لايصح الابعذر وهو الاظهر قال ابن عابدين :والاظهران قولهما اشبه فلاجرم ان في الحاوي القدسي وبه نأخذ(الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ۱/۵۶۳)

ف:مذکوره بالااختلاف په هغه کښتۍ کې دی کومه چې دسمندرپرغاړه تړل شوي نه وي بلکه روانه وي اوکومه کښتۍ چې دسمندرپرغاړه تړل شوي وي په هغه کې بلاعذره په ناسته لمونځ اداء کول بالاتفاق جائزنه دي کمافي شرح التنوير:(والمربوطة في الشط كالشط)في الاصح ،قال ابن عابدين :فلاتجوز الصلوة فيها قاعدا اتفاقا(ردالمحتار: ۱/۵۶۳)

ف:دسمندرپه ژوروا وبو کې ولاړه کښتۍ که دبادونوپه وجه سره په شدید اضطراب کې وي نوداسې کښتۍ دروانې کښتۍ په حکم کې ده یعنی په دې کې په ناسته لمونځ کول جائزدی اوکه په شدید اضطراب کې نه وي نوبیاپه غاړه دولاړې کښتۍ په حکم کې ده یعنی په دې کې بلاعذره په ناسته سره لمونځ اداء کول جائزنه دی کمافي التنوير:(والمربوطة بلجة البحران كان الريح يحركها شديدافكالسائرة والافكالواقفة)(ردالمحتار: ۱/۵۶۳)

(۳۰۰)که کوم کس ترپنځولمونځویاله دې څخه ترلږپورې بې هوشه وونودده پرذمه ددې قضاء شویولمونځوقضاء راوړل واجب دي .اوکه له پنځولمونځوڅخه زیات بې هوښه وونوددې قضاء شویولمونځونو قضاء نشته ولې بې هوشۍ چې کله اوږده شي نوقضاء شوي لمونځونه ډیرېږي نودحائضې په شان ددې په قضاء راوړلوکې حرج دی اوحرج شرعاً مدفوع دی .اوکه مدت اغماء کمه وي نولمونځونه کم وي دکوموپه قضاء راوړلوکې چې هیڅ حرج نشته لهذا داکس دنائم په څیردی په دې وجه ددې لمونځوقضاء راوړل پرده واجب ده ،همدرازمروی ده چې حضرت علی رضي الله عنه ترڅلورو لمونځو پورې دبې هوش پاتې کیدلووروسته دلمونځوقضاء راوړه ،اوحضرت ابن عمر رضي الله عنه تریوې ورځې اوشپې دزیات بې هوش پاتې کیدلووروسته دقضاء شویولمونځوقضاء رانه وړه.

ف:لیکن که دچاعقل دشرابو ،بنګووغیره منشیاتوپه وجه سره زائل شونودده پرذمه دلمونځوقضاء لازمه ده که څه هم تریوې ورځې اوشپې زیات بې هوشه پاتې شي ولې چې په دې وخت کې دده دهوش زائلوالی دګناه په وجه سره دې په دې وجه دتخفیف مستحق نه دی ،دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدددواء په وجه سره دبې هوش کس څخه هم قضاء نه ساقطیږي ولې چې سقوط قضاء خوله اثرڅخه ثابته ده په دې صورت کې چې بې هوشي دآفت سماوی په وجه سره وي لهذاپردې داسې بې هوشي قیاسول صحیح نه دی کومه چې په خپله دده له فعل څخه موجوده شوي وي ،حال داچې دامام محمد رحمه الله په نزدددواء په صورت کې هم قضاء

ساقطيږي ولی چې ددواء استعمال مباح دی نو دا دمرض په شان ده کمافی شرح التنویر: (زال عقله ببنج اوخمر)اودواء (لزمه القضاء وان طالت) لانه بصنع العباد کالنوم ,قال ابن عابدین: (قوله لانه بصنع العباد) ای سقوط القضاء عرف بالاثر اذا حصل بآفة سماویة فلایقاس علیه ماحصل بفعله وعند محمد یسقط القضاء (ردالمحتار: ۱/۵۶۴)

ف: دآپریشن لپاره مریض بې هوشه کوي نو که بې هوشي یوه ورځ اوشپه یاله دي څخه کمه وه نو په دي وخت کې به دلمونځو قضاء راوړي او که ده شپږم لمونځ وخت هم دبې هوشي په حالت کې تیرشو نو په دي صورت کې اختلاف دی په دي وجه قضاء کول بنه دي داحکم په خپل اختیارسره دبې هوشه کولو دی، په قدرتی بې هوشي کې که له پنځو لمونځو څخه زیات قضاء شي نو بالاتفاق ددي لمونځو قضاء معاف ده. (احسن الفتاوی ۴/۵۱:)

## باب سجود التلاوة

### داباب دسجده تلاوت په بیان کې دی

مناسبه خبره خوداوه چې سجده تلاوت یې له سجده سهو څخه فوراوروسته ذکرکړي وای ولی چې له داوړو څخه هریوه سجده ده مګرځرنګه چې دمریض لمونځ دسهو په شان دعارض سماوی په وجه دی په دي وجه یې له سجده سهو څخه وروسته صلوة مریض بیان کړنو لازما دسجده تلاوت بیان مؤخرشو په سجود التلاوة کې اضافت له قبیلي داضافت الحکم الی سببه دی ولی چې دسجده تلاوت سبب تلاوت دی.

دلته دمصنف رحمه الله دتلاوت دلفظ په ذکرکولو کې دي خبري ته اشاره ده چې که دسجده تلاوت آیت ولیکی نو پرده سجده نه واجبیږي، اودسجده داداء کولو شرطونه هغه دي کوم چې دلمانځه شرطونه دي ماسوا له تحریمي اودتعیین له نیت څخه، اودسجده سبب بالاجماع تلاوت دی په همدي وجه سره دتلاوت طرف ته منسوبیږي، اودسامعینو په حق دتلاوت اوریدل شرط دي همدا صحیح دی.

سجده تلاوت زموږ په نزد واجب او دامام شافعی رحمه الله په نزد سنت مؤکد ده دده دلیل دادی چې حضرت زیدبن ثابت رضی الله عنه دنبی کریم ﷺ په مخکې دسوره النجم تلاوت وکړلیکن نه زیدابن ثابت رضی الله عنه سجده وکړه اونه نبی کریم ﷺ سجده وکړه. ددي په ځواب کې موږ ویلی شو چې ممکنه ده چې نبی کریم ﷺ صرف په همدي وخت سجده نه وي کړي وروسته دي کړي وي نو په دي کې دنه واجبوالی هیڅ دلیل نشته ولی چې فی الفورسجده واجب نه ده، زموږ دلیل دادی چې ټول آیتونه ددي په واجبوالی دلالت کوي ولی چې ټول ایتونه پردري قسمه دي یوقسم خوهغه دي په کوموکې چې دسجدي کولوصریح امردی اوامردوجوب لپاره دی دوهم قسم هغه دي په کوموکې چې دانبیاءعلیهم السلام فعل مذکوردی اودانبیاء علیهم السلام اقتداء واجب ده اودریم قسم هغه دي په کوموکې چې دکفاروسرکشي بیان شوي ده اوددوئ مخالفت کول واجب دی، همدارازدنبی کریم ﷺ ارشاددی «السجدة علی من سمعها وعلی من تلاها» (یعنی سجده پراوریدونکی اوتلاوت کونکی دواړوواجب ده)، په حدیث شریف کې دعلی لفظ دی کوم چې پروجوب دلالت کوي.

(۳۰۱) تجب بأربع عشرة آية منها أولى الحج وص على من تلا ولو إماما أو سمع ولو غير قاصد (۳۰۲) أو مؤتما (۳۰۳) لا بتلاوته (۳۰۴) ولو سمعها المصلي من غيره سجد بعد الصلاة (۳۰۵) ولو سجد فيها أعادها (۳۰۶) ولو سمع من إمام فأتم به قبل أن يسجد سجد معه (۳۰۷) وبعده لا وإن لم يقتد به سجدها (۳۰۹) ولم تقض الصلاتية خارجها

**ترجمه**: سجده تلاوت واجبیږي په څوارلس ایتونو سره له کومو څخه دسوره حج داولنی ایت سجده ده اودوهمه دسوره ص ده پرهغه کس واجبیږي کوم چې تلاوت وکړي که څه هم امام وي یایې واوري که څه هم بلاقصده وي ،یامقتدی وي ،نه دمقتدی په تلاوت سره ، که آیت سجده واوریدی لمونځ کونکی له بل چاڅخه نوسجده دي وکړي له لمانځه څخه وروسته ، اوکه یې په لمانځه کې سجده وکړه نوهغه دي بیرته راوګرځوي نه لمونځ ،اوکه چاله امام څخه آیت سجده واوریدی بیاده په امام پسې اقتداء وکړه له سجده کولو څخه وړاندي نوسجده دي وکړي له امام سره ،اوکه یې له سجده کولو څخه وروسته اقتداء وکړه نوسجده دي نه کوي اوکه یې اقتداء ونه کړه نوسجده دي وکړي ،اوقضا به نه روا رل کیږي په لمانځه کې دواجب شوي سجدي له لمانځه څخه دباندي .

**تشریح** :(۳۰۱)دڅوارلس آیتونوپه وجه سجده تلاوت واجبیږي یعنی په قرآن مجید کې دسجدي آیتونه څوارلس دي –نمبر۱. په نهمه سپاره سوره اعراف کې آیت نمبر۲۰۶–/نمبر۲. په دیارلسمه سپاره سوره رعدکې آیت نمبر۱۵– /نمبر۳په څوارلسمه سپاره سوره نحل کې آیت نمبر۵۰–/نمبر۴په پنځلسمه سپاره سوره اسرائیل کې آیت نمبر۱۰۹–/نمبر۵په شپاړسمه سپاره سوره مریم کې آیت نمبر۵۸–/نمبر۶.په اولسمه سپاره دسوره حج اولنی سجده آیت نمبر۱۸–/نمبر۷.په نولسمه سپاره سوره فرقان کې آیت نمبر۶۰–/نمبر۸.په نولسمه سپاره په سوره نمل کې آیت نمبر۲۶–/نمبر۹په یوویشتمه سپاره سوره سجده کې آیت نمبر۱۵–/نمبر۱۰. په درویشتمه سپاره سوره ص کې آیت نمبر۲۴–/نمبر۱۱.په پنځه ویشتمه سپاره سوره حم سجده کې آیت نمبر۳۸–/نمبر۱۲. په اوویشتمه سپاره سوره نجم کې ایت نمبر۶۲–/نمبر۱۳.په دیرشمه سپاره سوره انشقاق کې آیت نمبر۲۱–/نمبر۱۴.په دیرشمه سپاره سوره علق کې آیت نمبر۱۹.

**ف**:دا باید یادوساتل شي چې دسوره حج دوهمه سجده داحنافوپه نزد واجب نه ده دشوافعوپه نزدواجب ده دشوافعودلیل دحضرت عقبه بن عامر ﷺ حدیث دی ﴿ان رسول الله ﷺ قال فضلت الحج بسجدتين من لم يسجدهما لم يقراهما﴾ (یعنی سوره حج ته په دووسجدوسره فضلیت ورکړل شوی دی چاچې دادواړه ونه کړي ګویاهغه نه دی ویلی)،داحنافودلیل دادی چې له حضرت ابن عمر ﷺ اوابن عباس ﷺ څخه منقول دي قالا سجدة التلاوة في الحج هي الاولى والثانية سجدة الصلوة (یعنی په سوره حج کې سجده تلاوت اوله ده دوهمه دلمانځه سجده صلوة ده )،دشوافعودلیل ځواب ورکړل شوی دی چې په روایت کې داتصریح نشته چې دواړه سجدي دتلاوت دي لهذادي دامطلب کیدای شي چې اوله سجده دي دتلاوت وي اودوهمه دلمانځه .دسوره ص سجده دشوافعوپه نزدواجب نه ده داحنافوپه نزدواجب ده ولی چې له حضرت ابن عباس ﷺ څخه مروی ده چې نبی کریم ﷺ په سوره ص کې سجده وکړه ،دسوره ص اوسوره حج په سجدو کې له شوافعوسره اختلاف دی په دې وجه مصنف ﷫ ددې دووپه باره کې تصریح وکړه.

(۳۰۲)په پورته ذکرشویو څوارلس ځایونوکې سجده کول پرویونکی اوسامع دواړوواجب ده که څه هم امام وي خواه که سامع دسماع قصدکړي وي اوکه یې نه وي کړی ولی چې دنبی کریم ﷺ په ارشاد﴿السجدة على من سمعها وعلى من تلاها﴾ (یعنی سجده پراوریدونکی اوتلاوت کونکی دواړولازمه ده) کې سجده په قصدباندي مقیده نه ده لهذا پرهر اوریدونکی واجب ده ،اوکه چاله کوم ویده یابې هوش یامجنون شخه آیت سجده واوریدی نودیوه روایت مطابق پرده سجده واجب نه ده مګراصح داده چې واجب ده کمافی اللباب فی شرح الکتاب :ولوسمعهامن نائم اومغمی علیه اومجنون ففیه روایتان اصحهماالاتجب لکن صحح فی الخلاصة والخانیة وجوبهابالسماع من النائم(اللباب فی شرح الکتاب علی هامش الجوهرة: ۱/۱۰۳)

ف :له ټیپ ریکارډر،کمپوټرسیډی ،ټی وی ،اوریډیو څخه که څاآیت سجده واوریدی نوپرده سجده تلاوت نه واجبیږي ولی چې په دي شیانوکې محفوظ شوی اوازدقاری اصل اوازنه دی بلکه عکس اونقل دی لهذا داله طوطی څخه داوریدل شوی آیت سجده په حکم کې دی قال ابوبکرابن مسعودالکاسانی : بخلاف السماع من الببغاء والصدی فان ذالک لیس بتلاوة وکذااذاسمع من المجنون لان ذالک لیس بتلاوة صحیحة لعدم اهلیته لانعدام التمیز (بدائع الصنائع : ۱/۲۷۶)،البته په ریډیواوټی وی که دقاری اصل اوازبراه راست (ژوندی) نشرکیدو (خپریدو)نوپرسامع سجده تلاوت لازمیږي ولی چې په دي صورت کې دادقاری اصل اوازګرځول شوی دی .

ف :له ممیزیعنی پوه نابالغ څخه دآیت سجدي په اوریدلوسره پرسامع سجده تلاوت واجبیږي .(احسن الفتاوی ۴/۶۲:)

(۳۰۳)قوله اومؤتماای یجب لوکان السامع مؤتماوان لم یسمع حقیقة ،یعنی که امام دسجدي آیت تلاوت کړنوامام دي په لمانځه کې فوراسجده وکړي اوله امام سره دي مقتدی هم سجده وکړي ولی چې مقتدی داقتداء په نیت کولوسره دامام متابعت پرخپل ځان لازم کړی دی نوکه سجده ونه کړي نوله امام څخه مخالفت لازمیږي.

(۳۰۴)قوله لابتلاوته ای لایجب بتلاوة المؤتم لاعلیه ولاعلی امامه ،یعنی که مقتدی دسجدي دآیت تلاوت وکړنو دشیخینوپه نزدپرامام اومقتدی دواړوسجده تلاوت نشته .نه دلمانځه دننه اونه له لمانځه څخه وروسته ،دامام محمد رحمه الله په نزدبه دواړه له لمانځه څخه وروسته سجده کوي ولی چې سبب سجده یعنی تلاوت یاسماع موجودشواوله لمانځه څخه وروسته کوم مانع هم نشته نوسجده کول پردواړولازم دي ،دشیخینودلیل دادی چې دامام شاته مقتدی لره قرآة شرعاًممنوع دی اوکوم کس چې له کوم تصرف څخه منع شوی وی دهغه دتصرف هیڅ حکم نه وي لهذادمقتدی دقرآة هیڅ حکم نشته نوپرمقتدی سجده تلاوت واجب نه ده اوکله چې پرتالی سجده واجبه نه ده نوپرسامع یعنی امام به هم واجبه نه وي ،اوکه کوم خارجی کس واوریدله نوصحیح داده چې پرده سجده لازمه ده ولی چې حجرخودامام اومقتدی په حق کې ثابت دی دخارجي په حق کې نشته .

ف :دشیخینوقول راجح دی کمافی التنویر:ولوتلاهاالمؤتم لم یسجدالمصلی اصلالافی الصلوة ولابعدهابخلاف الخارج لان الحجرثبت لمعنیین فلایعدوهم(التنویرعلی هامش الشامیة: ۱/۵۶۶)

(۳۰۵)که کوم لمونځ کونکی دلمانځه په حالت کې له کوم داسې کس څخه دسجدې آیت واوریدو کوم چې له ده سره په لمانځه کې شریک نه دی نو داوریدلو په حالت کې دې سجده نه کوي ولی چې داسجده دلمانځه سجده نه ده په دې وجه چې دده دسجدې آیت اوریدل دلمانځه له افعالو څخه نه دی، البته له لمانځه څخه وروسته سجده تلاوت کول واجب ده ولی چې سبب سجده یعنی دآیت سجده سماع موجود شو لماقال العلامة ابن عابدین: ولو سمع المصلی من غیره لم یسجد فیها بل بعدها (ردالمحتار: ۱/۵۶۶)

(۳۰۶)که ده بیاهم په لمانځه کې دننه سجده وکړه نو دا معتبر نه ده ولی چې په لمانځه کې دننه سجده کول دمنهی عنه والی په وجه سره ناقصه ده او کامل واجب په ناقص اداء کولو سره نه اداء کیږي او دلمانځه اعاده دې نه کوي ولی چې صرف سجده کول داحرام لمانځه سره منافی نه ده او په لمانځه کې له یوه رکعت څخه ذکم اضافه مفسد صلوة نه ده لمافی تنویر الابصار: ولو سمع المصلی من غیره لم یسجد فیها بل یسجدها بعدها ولو سجد فیها لم تجزئه و اعاده دونها ای الصلوة، قال ابن عابدین: (قوله دونها) وهو ظاهر الروایة وهو الصحیح وفی روایة النوادر تبطل به الصلوة ولیس بصحیح (تنویر الابصار علی هامش ردالمحتار: ۱/۵۷۲)

(۳۰۷)که چاله امام څخه آیت سجده واوریدی بیاده امام له سجدې کولو څخه وړاندې ده په دامام اقتداء وکړه نو اوس به له امام سره داکس هم سجده کوي ولی چې که دې کس آیت سجده نه وای اوریدلی هم به پرده دامام په متابعت کې سجده کول لازم وای نو کله چې ده آیت سجده هم واوریدی نو په طریقه اولی سره به لازمه وي.

(۳۰۸)قوله وبعده لا ای وان اقتدی بعدما سجد الامام لایسجد المقتدی لا فی الصلوة ولا بعد الفراغ منها، یعنی که امام سجده تلاوت وکړه وروسته دې کس په امام پسې اقتداء وکړه نو اوس به داکس دسجدې اعاده نه په لمانځه کې کوي او نه له لمانځه څخه وروسته ولی چې ده له امام سره رکعت وموندی نو ده داسجده هم وموندله لکه چې کوم کس دوتر په اخیري رکعت کې له امام سره شریک شې نو در کعت موندلو په وجه داکس دعاء قنوت لره هم موندونکی شمارل کیږي، همدارازپه دې وجه هم چې داکس نه په لمانځه کې سجده کولی شې ولی چې دامام مخالفت لازمیږي اونه خارج له لمانځه ولی چې صلاتیه سجده پر غیر صلوتیه سجده فضلیت لري او قاعده ده چې کامل واجب په ناقص اداء سره نه اداء کیږي، او که دې کس دامام اقتداء ونه کړه نو سجده دې وکړي ولی چې دسجدې سبب دده په حق کې موجود شو.

(۳۰۹)کومه سجده چې دلمانځه په حالت کې واجب شې خواه که یې په خپله تلاوت وکړیا یې له امام څخه آیت سجده واوریدی نو دا سجده له لمانځه څخه دباندې په اداء کولو سره نه اداء کیږي ولی چې صلوتیه سجدې لره په غیر صلوتیه سجدې فضلیت حاصل دی، همداراز دلمانځه دجزء والی په وجه سره دې ته کمال حاصل شو او کامل واجب په ناقص اداء سره نه اداء کیږي.

(۳۱۰) ولو تلاها خارج الصلاة فسجد وأعادها فيها سجد أخرى (۳۱۱) وإن لم يسجد أولا كفته واحدة (۳۱۲) كمن كررها في مجلس لا في مجلسين (۳۱۳) وكيفيته أن يسجد بشرط الصلاة بين تكبيرتين بلا رفع يد وتشهد وتسليم (۳۱۴) وكره أن يقرأ سورة ويدع آية السجدة لا عكسه

**ترجمه**:اوکه یې آیت سجده تلاوت کړله لمانځه څخه دباندي اودهغه لپاره یې سجده وکړه بیایې دوهم ځل آیت سجده راوګرځاوو په لمانځه کې نودوهمه سجده دي وکړي ،اوکه اول ځل سجده ونه کړه نودي لره یوه سجده کافی ده ،لکه چې څوک څوځله ایت سجده ولولي په یوه مجلس کې نه په دوو مجلسونو کې ،اودسجدي طریقه داده چې سجده دکړي په شرائطودلمانځه ددووتکبیرونوپه منځ کې له رفع یدین اوتشهداوسلام څخه بغیر ،اومکروه ده چې سورة ولولي اوآیت سجده پریږدي نه ددي عکس.

**تشریح**:(۳۱۰)که چاآیت سجده تلاوت کړاوسجده یې ادا ءکړه بیایې په همدي مجلس کې لمونځ پیل کړهمدا آیت یې دوهم ځل تلاوت کړنوله دي څخه وړاند ي شوي سجده کفایت نه کوي بلکه دي لره به بله سجده کوي ولی چې سجده ثانیه دصلاتیه والی په وجه سره قوی ده په دي وجه دسجده اولی دتابع والی په وجه نه اداء کیږي.

(۳۱۱)که چاآیت سجده تلاوت کړاوسجده یې ونه کړه حتی چې په دغه مجلس کې یې لمونځ پیل کړبیایې په لمانځه کې همداآیت سجده دوهم ځل تلاوت کړاوپه لمانځه کې یې سجده تلاوت اداء کړه نوداسجده دواړوتلاوتونولره کافی ده ولی چې دوهمه سجده دصلاتیه والی په وجه سره اقوی ده لهذاسجده اولی تابع ده ثانیه متبوع ،اومتبوع تابع ته متضمن وي.

(۳۱۲)که چاپه یوه مجلس کې یوآیت سجده باربار(بیابیا)تلاوت کړنوټولوتلاوتونولره یوه سجده کفایت کوي ولی چې دسجدوبناء ددفع حرج په وجه پرتداخل ده په دي شرط چې مجلس یووي ،همدارازمروی ده چې حضرت ابوموسی اشعری ﷺ به دکوفی په مسجدکې کښېنستی اوخلګوته به یې دقرآن تعلیم ورکاوواوکه به دسجدي آیت راتلونوهغه به یې هم باربارتلاوت کاوومګرځرنګه چې مجلس یووپه دي وجه به یې یوه سجده اداء کوله ،اوکه مجلس یونه وو نوبیایوه سجده کافی نه ده بلکه په مختلفومجلسونوکې دیوه آیت په تلاوت کولوسره دهریوه تلاوت لپاره علیحده سجده کول ضروري ده ولی چې په سبب کې تکراردی.

**ف**:که داصورت وي چې دتلاوت کونکی مجلس ځوبووي البته دسامع مجلس بدل شوتوبالاتفاق په اوریدونکی باندي وجوب سجده مکرردی اوکه دتلاوت کونکی مجلس بدل شومګرد سامع مجلس بدل نه شونودځینو حضراتوپه نزدپرسامع وجوب سجده مکرردی مګراصح داده چې مکررنه دي وعلیه الفتوی ولی چې دسامع په حق کې دسجدي دواجب والی سبب سماع ده اودسماع په مجلس کې تکرارنه دی شوی لهذاپرسامع به وجوب سجده هم مکررنه وي کمافی شرح التنویر:(ولوتبدل مجلس سامع دون تال)حتی لو کرر هاراکبایصلی وغلامه یمشی تتکرعلی الغلام لاالراکب (لا)تتکرر(فی عکسه) وهوتبدل مجلس التالی دون السامع علی المفتی به (تنویر الابصارعلی هامش ردالمحتار: ۱/۵۷۵)

(۳۱۳)یعنی دسجده تلاوت کیفیت دادی چې کله دسجده تلاوت دکولواراده وکړي نوله رفع یدین څخه بغیرتکبیرووایه سجده وکړه بیاتکبیرووایه سرله ځمکې څخه راپورته کړه ولی چې دادلمانځه پرسجده قیاس ده ،البته دسجدي تلاوت څخه وروسته نه تشهدشته اونه سلام ولی چې تشهداوسلام دتحلیل لپاره مشروع دي اوتحلیل تقاضاکوي چې وړاندي به تحریمه وي دلته تحریمه معدومه ده

لهذاتحليل به هم نه وي نوتشهداوسلام به هم نه وي ،اوسجده تلاوت لپاره هغه شرطونه دي کوم چې دلمانځه لپاره دي يعنې له احداثوا وانجاسو څخه پاکي ،سترعورت اواستقبال قبله وغيره .

ف:اصل خوداده چې په حالت قيام کې نيت وکړي ،الله اکبروواېي اوسجده وکړي ليکن که چاپه ناسته سره په الله اکبرويلوسجده وکړه نوپه دي کې هم څه حرج نشته کمافي شرح التنوير:(وهي سجدة بين تکبيرتين) مسنونتين جهراوبين قيامين مستحبين (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار: ١/٥٦٧)

(٣١٤)يعنې هغه ټول سورة تلاوت کول په کوم کې چې آيت سجده وي اوآيت سجده پرېښودل مکروه دي ولې چې په داسې کولوکې له ايت سجده څخه له اعراض کولوسره مشابهت دی اودبعض قرآن کريم هجران لازمېږي کوم چې مکروه دی ،اوددي عکس مکروه نه دی يعنې چې دسورة نورآيتونه پرېږدي صرف آيت سجده تلاوت کړي ولې چې په داسې کولوکې اعرض نشته بلکه مبادرت دی ،دامام محمد رحمه الله په نزدبنه داده چې له آيت سجده څخه وړاندي يويادوه آيتونه ولولې ترڅوچې دآيت سجده دفضليت وهم ليري شي.(کذافی الهداية:١/١٤٨)

ف:که قاري په دي پوهېږي چې دآيت سجده په ويلوسره خلک په مشقت کې نه واقع کيږي نوبيايه جهرسره ويل مستحب ده که نه نو بايد اخفاء وکړل شي .(فتح القدير:١/٤٧٨)

## باب صلاة المسافر

### دباب دمسافردلمانځه په بيان کې دی

څرنګه چې دتلاوت په شان دسفرهم انسان کسب کوي په دي وجه يې دسجده تلاوت داحکامو له ذکرکولوڅخه اوس دسفراحکام شروع کړل ،بياڅرنګه چې تلاوت عبادت دی که شاذاونادردکوم عارض په وجه سره کله عبادت نه وي نوداپيله خبره ده لکه درياء په صورت کې اوسفرعبادت نه دی هودکوم عارض په وجه سره عبادت جوړيدلی شي په دي وجه يې سجده تلاوت مقدمه کړه ،اوپه صلوة المسافرکې اضافت اضافة الشئ الى شرطه دی اويا اضافة الشئ الى محله دی .

دسفرلغوی معنی مسافت طی کول دي اوپه اصطلاح دفقهاؤکې دهغه مسافت طی کولوته ويل کيږي په کوم سره چې احکام (مثلاقصرصلوة ،اباحة فطر،امتدادمدة مسح وغيره )متغيرکيږي .

(٣١٥)من جاوز بيوت مصره مريدا سيرا وسطا ثلاثة أيام في بر او بحر او جبل (٣١٦)قصر الفرض الرباعي (٣١٧)فلو اتم وقعد في الثانية صح (٣١٨)حتى يدخل مصره او ينوي إقامة نصف شهر ببلد او قرية

**ترجمه** :کوم کس چې تيرشي دخپل ښارله کورونوڅخه په درميانه تګ سره ددريوورځودسفرپه اراده سره خواه که په وچه (خشکي )کې وي اوکه په درياب کې ياغره کې وي ،نوهغه دي قصرکوي درباعی فرضو،اوکه يې پوره اداء کړل اوپه دوهم رکعت کښينوست نوصحيح دی که نه نو نه دی،ترڅوچې داخل شي خپل ښارته يادا قامت نيت وکړي پنځلس ورځې په کوم ښاريا کلي کې .

**تشریح** :(۳۱۵)یعني په کوم سفرسره چې احکام متغیر کیږي هغه سفردادی چې انسان په درمیانه تګ سره ددریو ورځو اودریوشپوتګ په اراده سره دښارله آبادي څخه ووځي خواه که سفردخشکې وي اوکه ددریاب وي یادغره وي.ددریو ورځواودریوشپوپرتقدیردلیل دنبی کریم ﷺ حدیث دی﴿یمسح المقیم کمال یوم ولیلة والمسافر ثلاثة ایام ولیالیها﴾(یعنی مقیم دې پوره یوه ورځ اویوه شپه مسح کوي اومسافردې دري ورځې اودري شپې مسح کوي )وجه استدلال داده چې دالمسافر الف لام استغراقی دی نودمسح رخصت هرمسافرته شامل شویعنی هرمسافردري ورځې اودري شپې پر مسح کولو قادر دی اوهرمسافردري ورځې اودري شپې پرمسح هغه وخت قادریدلی شي کله چې اقل مده دسفردري ورځې اودري شپې وي که اقل مدت سفرله دي څخه کم ومنل شي نودهرمسافربه دري ورځې اودري شپې پرمسح کولو قادروالی ممکن پاتې نه شي حال داچې له حدیث څخه دري ورځې اودري شپې دهرمسافرلپاره پرمسح کولو قدرت ثابت دی نوثابته شوه چې دسفرکم ترکمه مده دري ورځې اودري شپې ده،له درمیانه تګ څخه داونښ اوپښوتللو رفتار مراددی.

په خشکې (وچه )دریاب اوغره هریوه کې دهغه ځای سفرمراددی یعنی په دریابې سفرکې به دخشکی رفتارمعتبرنه وي لکه څرنګه چې په خشکی کې ددریابې سفراعتبارنشته بلکه په هرځای کې له هغه سره دلائق رفتاراعتباردی حتی که یوځای ته درسیدلودوه لارې وي یوه دوچې اوبله دریابې ،په خشکی کې ترهغه ځای درسیدلومسافت دري ورځې اودري شپې دی اوددریاب پرلاره ددوو ورځو مسافت دی نوکه کوم کس دامسافت دوچې پرلاروهې نوده ته به دمسافرورخصت حاصل وي اوکه ددریاب له لارې ولاړی نودرخصت سفربه ورته حاصل نه وي ،حاصل داچې دهرځای له حال سره لائق ددریوورځواوشپوسفرمعتبردی.

**ف**:اوله ورځې څخه دکال ترټولوکوچنی ورځ مرادده اوځلورویشت ګانټې رفتارمرادنه دی بلکه له سهارڅخه ترزوال پوري رفتارمراددی ولی چې مسلسل تګ کول دانسان په طاقت کې نشته ،نوهره ورځ له سهارڅخه ترزوال پوري کوم منزل ته په رسیدلواواستراحت کولوسره چې په دریوورځواوشپوکې چې څومره مسافت طی شي هغه مسافت سفردی ،نوکه چاپه تیزسفرکولوسره له دریوورځواوشپوڅخه په لږوخت کې مسافت سفرطی کړمثلاپه ریل ګاډی ،موټریاپه طیاره کې یې سفروکړاوددریوورځو اوشپومسافت یې په یوه ورځ یایوه ګانټه کې طی کړنوهم به قصرکوي کمافی شرح التنویر:(مسیرة ثلاثة ایام ولیالیها)من اقصر ایام السنة ولایشترط سفر کل یوم الی اللیل بل الی الزوال ....(بالسیر الوسط مع الاستراحات المعتادة )حتی لواسرع لوصل فی یومین قصر (الدر المختارعلی هامش ردالمحتار: ۱/ ۵۲۹)

**ف**:دشرعی سفردمسافت په تعیین کې حضرات صحابه کرام ﷺ ،تابعین اوائمه مجتهدین رحمهم الله تعالی سره مختلف دي ،په عمدة القاری شرح بخاری وغیره کې ددي تفصیل موجوددی ،دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله روایات هم په دي باره کې مختلف دي مګرصحیح اوراجح دامام صاحب مذهب دادی چې په میلونووغیره به دکوم مقدارتحدیدنه کیږي بلکه په دریوورځوکې په میدانی علاقه کې په پښوپه تګ کولوسره چې انسان څومره مسافت (فاصله )په اسانی سره طی کولی شي هغه مسافت شرعی دی . له امام

صاحب څخه يوروايت دادی چې ده دسفرشرعی مسافت دري منزله مقررکړی دی، صاحب هدايه فرمايي چې ددي حاصل هم تقريباهغه دی کوم چې پورته ذکرشو (يعنی ددريو ورځومسافت).

الغرض جمهورمشائخ احنافوپه ميلونوسره دتعيين اعتبارنه دی کړی په دي وجه چې ددريو ورځو مسافت اصل مذهب دی کوم چې دلاري وغيره په اختلاف سره مختلف کيږي ،له همدي سره سره ديروفقهاء کراموميل اوفرسخ تعيين هم کړی دی اوددوئ اقول هم مختلف دي ،دهندوستان په عامه بلادوکې څرنګه چې لاري تقريباسره يوشان دي ،په دي وجه دهندمحققينوعلماؤدميلونوتعيين کړی دی اواته څلويښت انګريزي ميله يې دقصرمسافت ګرځولی دی ولی چې عندالفقهاء په معهودو وختونوکې همدومره مسافت په آساني سره پياده مسافرددي ځای په عاموبرابرولاروکې طی کولی شي .........اواته څلويښت انګريزي ميله دچکرورتی په حساب سره د۷۷کلوميټره دوه سوه اته څلويښت ميټره اودووميلي ميټرو(۷۷کلوميټراو۲۴۸ميټره او۲ملی ميټر)کيږي (تقريباپاواوبالا۷۷کلوميټره ) په دومره مسافت باندي محققين حضرات دقصردواجيدلوفتوی ورکوي اوداقول دپنځلس فرسخووالاله قول سره قريب قريب دی .

**تنبيه** :داخبره هم په خيال کې دساتلولائقه ده چې دفرسخ والاقول داحنافواصل مذهب نه دی بلکه تقريبي مقداردی .نوپه همدي اقوالوپه بنياداينبودلوسره دماعداباالکليه نفی کول له روايت اودرايت دواړوڅخه خلاف دي همدارازبعض محققين علماء له اته څلويښت ميله څخه دکم اوبعض دزيات قائل دي نوداته څلويښت انګريزي ميله والاقول اعدل اواوسط الاقاويل دی په همدي وجه هم زموږپه نزددي ته ترجيح حاصله ده اوصاحب احسن الفتاوی زاده مجده هم داته څلويښت انګريزي ميله طرف ته رجوع فرمايلې ده ،والله اعلم وعلمه اتم واحکم (مسائل رفعت قاسمی: ۲۷/۳مسائل سفر)

(۳۱۶)يعنی مذکوره بالامسافردي خپل څلورکعتی لمونځ مختصرکړي اودوه رکعته دي اداء کړي ﴿لقول عائشة رضي الله عنها فرضت الصلوة رکعتين فاقرت صلوة السفروزيدفي الحضر﴾ (يعنی لمونځ دوه رکعته فرض کړل شوی دی نودسفرلمونځ پرهمدي حال باقی پاتې شوی دی اودحضرپه لمانځه کې اضافه کړل شوي دي )

اودرباعی په قيدسره له فجراومغرب څخه احترازدی په دي وجه چې په فجراومغرب کې قصرنشته .

**ف**:دامام شافعی رحمه الله په نزدمسافرته دسفرپه حالت کې داسانی په غرض سره درباعی لمانځه ددورکعتونوداداء کولورخصت ورکړل شوی دی مګرپوره څلوررکعته اداء کول افضل دي امام شافعی رحمه الله لمونځ پرروژه قياسوي يعنی لکه څرنګه چې مسافرته په رمضان کې دافطاراجازت دی مګرروژه نيول افضل دی همداشان په رباعی لمانځه کې دقصراجازت اواتمام افضل دی ،مګرامام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې په روژه اولمانځه کې فرق دی ولی چې درباعی فرضوداخيري دووړکعتونوقضاء نشته حال داچې دروژي له افطار کولوڅخه وروسته دهغې قضاء واجب ده په دي وجه درباعی لمانځه پرروژي قياسول صحيح نه دي .

ف: او دسنتونو په باره کې حکم دادی چې که مسافر دامن او قرار په حالت کې وي نو اولی داده چې سنن ادا، کړي او که دتلواري او فرار په حالت کې وي نو ترک دې کړي کما في شرح التنوير: (ويأتي) المسافر (بالسنن) ان كان (في حال امن وقرار و) الا (بان كان خوف وفرار (لا) يأتي بها هو المختار لانه ترك لعذر تجنيس قيل الا سنة الفجر (الدر المختار على هامش ردالمحتار: ۱/۵۸۵)

(۳۱۷) يعنې که مسافر دوو رکعتونو پر ځای څلور رکعته اداء کړل او د دتشهد په اندازه په دوهم رکعت کې کښېنستی هم نو اولنی دوه رکعتونه فرض او وروستنی دوه رکعتونه نفل شمارل کيږي البته دتاخير سلام په وجه ګناهګار به بيږي ،او که بقدر تشهد پر دوهم رکعت نه کښېنستی نو دده لمونځ باطليږي ولی چې دفرضو ارکان نه دي مکمل شوي په دې وجه چې اخيري قعده پاته شوي ده اوله تکميل ارکان څخه وړاندې له فرضو سره دنفل په يو ځای کولو لمونځ باطليږي په دې وجه دده لمونځ باطل شو.

ف: که کوم کس په سفر کې قصداً قصر ونه کړ بلکه پوره لمونځ يې اداء کړ نو دا کس عمداً دترک واجب په وجه سره ګنهګاريږي په دې وجه پر ده توبه او د دې لمانځه اعاده واجب ده (احسن الفتاوی: ۴/۷۷)

(۳۱۸) قوله حتى يدخل مصره ،دامصنف رحمه الله دقول قصر لپاره غايه ده اى لايزال يقصر فى سفره الى دخول مصره ،يعنې دسفر حکم تر هغه وخت پورې باقي دی ترڅو چې دی خپل ښار ته داخل نه شي يا په کوم بل ښار يا کلي کې لږ تر لږه دپنځلسو ورځو يا له دې څخه دزيات قيام نيت ونه کړي نو کله چې دپنځلسو ورځو يا له دې څخه دزيات قيام نيت وکړي نو دسفر حکم ختميږي او اتمام صلوة لازم دی ،ادنی مدت اقامت په ادنی مدت طهر قياس شوي دی علت مشترکه داده چې طهرا و اقامت دواړه موجب دي يعنې لکه څرنګه چې دحيض په وجه سره کوم عبادت ساقط شوی وو د طهر په وجه هغه عود کوي همداشان دسفر په وجه سره ساقط شوی عبادت هم دنيت اقامت په وجه سره عود کوي نو لکه څرنګه چې ادنی مدت طهر پنځلس ورځې دی همداشان به ادانی مدت اقامت هم پنځلس ورځې وي.

(۳۱۹) لا بمكة ومنى (۳۲۰) وقصر ان نوى أقل منه او لم ينو وبقى سنين (۳۲۱) او نوى عسكر ذلك بأرض الحرب (۳۲۲) وإن حاصروا مصرا (۳۲۳) او حاصروا أهل البغي في دارنا في غيره (۳۲۴) بخلاف أهل الأخبية

**ترجمه**: نه په مکه او منی کې ،او قصر دې کوي که يې نيت وکړله دې څخه دکم يا يې نيت ونه کړ او تر کلونو پورې په سفر کې پاتې شو ،يا نيت وکړ لشکر د اقامت په دار الحرب کې ،که څه هم هغه محاصره کړي کوم ښار يا محاصره کړي ،باغيان په دار الاسلام کې په غير ښار کې ،په خلاف دخانه بدوشو (کوچيانو).

**تشريح**: (۳۱۹) قوله لا بمكة ومنى اى لايصح الانوى الاقامة بمكة ومنى ،يعنې دصحت اقامت لپاره اتحاد مکان شرط دی نو که مسافر په دوو جلا جلا ځايونو کې على الاشتراک داقامت نيت وکړ مثلاً په مکه مکرمه او منی کې يې دپنځلس ورځو داقامت نيت وکړ نو دی به لمونځ پوره نه اداء کوي ولی چې په دوو ځايونو کې نيت اقامت معتبر نه دی په دې وجه چې په دوو ځايونو کې دنيت اقامت دمعتبر والی مقتضی ده چې په څو ځايونو کې هم نيت معتبر شي حال دا چې دا ممنوع ده ولی چې سفر په متعدد دو ځايونو کې له قيام کولو څخه خالي نه وي نو که دمتعدد دو ځايونو دنيت اعتبار و کړل شي نو د دې مطلب به دا وي چې انسان به کله هم مسافر نه وي حال دا چې داسې نه ده لهذا په متعدد دو ځايونو کې داقامت په نيت سره څوک مقيم نه ګرځي ،هو که په دې دوو کې په يو

کې دشپې تيرولونيت وکړي نوپه دي مقام کې په داخليدلوسره مقيم کرځې ولی چې دانسان مقيم والی دشپې دتيرولوځای ته منسوب کيږي.

ف:په مکه مکرمه اومنی سره يې دومستقلوځايونوته اشاره ده چې هريومقام مستقل اصل وي دبل مقام تابع نه وي نوکه په دوو مقاماتوکې يودهغه بل تابع وو مثلادښاريوداسي کلی چې په هغه کې له ښارسره دمتصل والی له کبله جمعه واجبه وي نوکه چاپه داسي کلی اوښاردواړوکې داقامت نيت وکړ نوداسي کس به مقيم ګڼل کيږي کمافی شرح التنوير: او کان احدهماتبعاللاخر بحيث تجب الجمعة علی ساکنه للاتحاد حکما(الدر المختار علی هامش ردالمحتار:۱/۵۸۲)

(۳۲۰)اوکه يې په کوم ښارکې ترپنځلسوورځوکم داقامت نيت وکړنوقصربه کوي ولی چې دسفرحکم برقراردی .اوهمدا راز سفرپه مابين کې له مختصرواقامتونوڅخه خالی نه وي په دي وجه ترپنځلسو ورځودکم اقامت اعتبارنشته . همداشان که مسافرکوم ښارته داخل شواوداقامت نيت يې ونه کړبلکه نيت يې داوو چې سبابه ځم يابه بله ورځ ځم حتی چې په دغه نن اوسباکې پرده کلونه تيرشول نوداکس به قصرکوي مقيم نه ورته ويل کيږي ولی چې حضرت عبدالله بن عمررضی الله عنهماپه اذربائجان کې شپږمياشتي تيري کړي مګرڅرنګه چې حضرت عبدالله ابن عمررضی الله عنهماپه يوه وخت دپنځلسوشپودتيرولونيت نه وو کړی په دي وجه هغه قصرکاوو همداشان حضرت انس رضی الله عنه په نيشاپورکې تريوه کاله پوري داقامت دنيت دنيستی له کبله قصرکاوو .

(۳۲۱)قوله اونوی عسکر ذالک بارض الحرب ای ان نوی عسکر الاقامة فی دار الحرب قصر واطلقا،يعنی که اسلامی لشکر دارالحرب ته داخل شواودپنځلسو ورځوداوسيدلونيت يې وکړنوددوئ نيت معتبرنه دی لهذاقصربه کوي ولی چې دپه قراراوتښيته کې متردد دي په دي وجه چې يې شکست وخوړی نوتښتي به اوکه يې فتح حاصله کړه نواقامت به کوي لهذا دارالحرب ددوئ په حق کې دارالاقامت نه دی په دي وجه ددوئ دانيت اقامت هم معتبرنه دی .

(۳۲۲)يعنی که اسلامی لشکرپه دارالحرب کې دننه کوم ښارياقلعه محاصره کړه اودپنځلسو ورځوداقامت نيت يې وکړ نوبه بياهم داخلګ قصرکوي دوئ مقيم نه ګڼل کيږي ولی چې داقامت محل هغه ځای وي چيرته چې انسان لره په حتمی طريقه سره قراروي دلته خولشکرپه قراراوفرارکې متردد دی په دي وجه چې که شکست يې وخوړی نوتښتي به اوکه يې فتح حاصله کړه نواقامت به کوي لهذاداد ارالاقامت نه دی.

(۳۲۳)همداحکم هغه وخت هم دی چې اسلامی لشکرپه دارالاسلام کې دننه دښارپه ځای په يوه ځنګل کې داسلامی حکومت باغيان محاصره کړی ولی چې دلته هم داسلامی لشکرسپاهيانوته قرارحاصل نه دی بلکه ممکن ده چې له باغيانودي شکست وخوری اوودي تښتی اوممکن ده چې فتح دي حاصله کړي اوبرقراردي پاته شي لهذاداسي ځای ددوئ لپاره دارالاقامت نه ګڼل کيږي .

(۳۲۴)قوله بخلاف اهل الاخبية ای ذلک الحکم المتقدم ملتبس بمخالفة حکم اهل الاخبية حيث تصح منهم نية الاقامة ،يعنی دا مذکورحکم په خيموکې داوسيدونکوکوچيانودحکم مخالف دی چې هغوئ (کوچيان) په ځنګل کې هم

مسافرنه دي بلكه په ځنګل کې هم ددوئ داقامت نيت صحيح دی ولی چې له ځرځايه ځخه بل ځرځای ته په منتقل کيدوسره ځوک مسافرنه ګرځي ولی چې اقامت اصل دی اوسفروړ باندي عارض وي نوترڅوچې ددريوورځودسفرنيت ونه کړي مسافرنه ګڼل کيږي لهذاکوچيان به خپل لمونځونه پوره اداء کوي قصربه نه کوي،په دي شرط چې له دوئ سره به دومره اوبه اوواښه وي چې داقامت په مده کې دوئ لره کفايت وکړي.

ف:له کوچيانو ځخه ماسواکه نورځوک په ځنګل کې داقامت نيت وکړي نومقيم نه ګڼل کيږي كماقال العلامة الحصكفي رحمه الله: ولونوى غيرهم الاقامة معهم لم يصح في الاصح (الدرالمختار:۱/۵۸۳)

ف:کوچيان چې کله ديځ ځای ځخه دګرم ځای لورته دباريدو قصدوکړي نوبيامسافرګڼل کيږي په دي شرط چې ددي دواړوځايونوترمنځ به ددريوورځومسافه وي قال شارح التنوير: الااذاقصدواموضعابينهمامدة السفرفيقصرون ان نووا سفراوالالا (الدرالمختار على هامش ردالمحتار:۱/۵۸۳)

(۳۲۵)وَإِنِ اقْتَدَى مُسَافِرٌ بِمُقِيمٍ فِي الْوَقْتِ صَحَّ وَأَتَمَّ (۳۲۶)وَبَعْدَهُ لَا (۳۲۷)وَبِعَكْسِهِ صَحَّ فِيهِمَا (۳۲۸)وَيَبْطُلُ الْوَطَنُ الْأَصْلِيُّ بِمِثْلِهِ لَا السَّفَرِ وَوَطَنُ الْإِقَامَةِ بِمِثْلِهِ وَالسَّفَرِ وَالْأَصْلِيِّ

**توجمه**:اوکه مسافرپه مقيم پسي اقتداموکړه په وخت کې دننه نوداصحيح ده اومسافردي لمونځ پوره وکړي ،اوله وخت ځخه وروسته صحيح نه ده ،اوددي په عکس کې دواړه صورتونه صحيح دي ،او باطليږي وطن اصلی په خپل مثل سره اووطن اقامت په خپل مثل سره اوپه وطن اصلی سره

**تشريح**:(۳۲۵)يعنی که مسافرپه وخت کې دننه دمقيم امام اقتداء وکړه نودامسافربه پوره ځلوررکعته لمونځ اداء کوي ولی چې مسافردامام دمتابعت التزام کړی دی نوداتباع له امله دده دوه رکعته ځلوررکعتونوته متغيرکيږي.

(۳۲۶)قوله وبعده لا اى لواقتدى بمقيم بعدخروج الوقت لايصح اقتدائه ،يعنی که له وخت ځخه وروسته په قضاشوي لمانځه کې مسافردمقيم امام اقتداء وکړه نوداجائزنه ده ولی چې دوخت دتيريدلووروسته فريضه نه متغيرکيږي لکه ځرنګه چې داقامت دنيت په کولوسره نه متغيرکيږي نوکه په مقيم پسي اقتداء وکړي نوقعده اولی دمسافرپه حق کې فرض ده اودمقيم په حق کې فرض نه ده نودااقتداء المفترض بمتنفل په شان جائزنه ده.

(۳۲۶)قوله وبعكسه صح فيهمااى لواقتدى مقيم بمسافرصح فى الوقت وبعدالوقت ،يعنی که مقيم دمسافرامام اقتداء وکړه نوپه وخت کې دننه اودوخت له تيريدلوځخه وروسته په دواړه صورتونوکې اقتداء صحيح ده امام به په دوه رکعته سلام ګرځوي ولی چې دده لمونځ پوره شواومقيم مقتدی به په انفرادي ډول سره خپل پاته لمونځ پوره کړي ولی چې مقيم صرف په دوو رکعتونوکې دامام دمتابعت التزام کړی وو نودمسبوق په ځيربه دی خپل باقی لمونځ انفراداداء کوي مګرځرنګه چې دی لاحق دی له دکبله به په باقی لمانځه کې قرأة نه وايي.

ف:دمسافرامام لپاره دامستحب ده چې کله سلام وګرځوي نومقتديانوته دي ووايي چې تاسي خپل لمونځونه پوره کړئ زه مسافريم ولی چې نبی کريم ﷺ په مکه مکرمه کې سفرپه حالت کې امامت

وکړاوپه اخرکې يې وفرمايل ﴿أَتِمُّوا صَلَاتَكُمْ فَإِنَّا قَوْمٌ سَفْرٌ﴾ (تاسي خپل لمونځونه پوره کړئ موږمسافريم) مګرښه خبره داده چې امام له لمانځه شروع کولو څخه مخکې مقتديانوته داووايي.

(۳۲۸) وطن اصلي په بل وطن اصلي سره باطليږي يعني که دچاکوم ځاى وطن وو بيادى له هغه ځايه منتقل شوکوم بل ځاى وطن جوړکړييايې سفروکړاوپه خپل پخواني وطن ته داخل شونوکه دپنځلسوورځواقامت نيت يې نه وکړى نوقصربه کوي په دي وجه چې هغه اوس دده وطن نه دى پاتى ولى چې نبي کريم ﷺ اوصحابه کرام ﷺ دمدينه منوري لورته له هجرت کولوڅخه وروسته خپل ځانونه په مکه مسافرګڼل ،مګرله وطن اصلي څخه صرف په سفرکولوياکوم بل ځاى وطن اقامت جوړولوسره وطن اصلي نه باطليږي ولى چې دسفراووطن اقامت درجه له وطن اصلي څخه کمه ده اواعلى په ادنى سره نه باطليږي ،نوقاعده داده چې وطن اصلي (يعنى دانسان دپيدائش ځاى ياهغه ښارياکلي چې په هغه کې داهل وعيال اوسيږي) په خپل مثل يعنى بل وطن اصلي سره باطليږي نه په سفراووطن اقامت سره.

اووطن اقامت (هغه ښارياکلي په کوم کې چې مسافردپنځلسوورځويازيات وخت تيرلواراده کړى وي هغه ته وطن اقامت ويل کيږي هغه ته وطن سفرهم ويل کيږي) په خپل مثل يعني بل وطن اقامت سره اوپه سفرکولوسره اوپه وطن اصلي دري واړوسره باطليږي په سفرخوپه دي وجه باطليږي چې سفرداقامت ضددى اوقاعده ده چې شى په خپل ضدسره باطليږي، اوپه وطن اقامت اووطن اصلي سره په دي وجه باطليږي چې شى په خپل مساوى اومافوق سره هم باطليږي.

ف:که چيرته کوم کس له خپل اهل وعيال سره په کوټه کې اوسيږي اودده موږپلار،وررونه خويندي وغيره په کراچې کې اوسيږي اوپه کراچې کې ددي کس ځمکه هم وي نوکه دى کله کراچې ته ولاړى اوده دوري دپنځلسوورځوڅخه دکم وخت اوسيدلواراده وکړه نوداکس به دوري مسافرګڼل کيږي لهذاقصربه کوي.(احسن الفتاوى بتغير:۴/۷۷)

(۳۲۹) وَفَائِتَةُ السَّفَرِ وَالْحَضَرِ تُقْضَى رَكْعَتَيْنِ وَأَرْبَعًا (۳۳۰) وَالْمُعْتَبَرُ فِيهِ آخِرُ الْوَقْتِ (۳۳۱) وَالْعَاصِي كَغَيْرِهِ (۳۳۲) وَلَا تَعْتَبِرُ نِيَّةُ الْإِقَامَةِ وَالسَّفَرِ مِنَ الْأَصْلِ دُونَ التَّبَعِ كَالْمَرْأَةِ وَالْعَبْدِ وَالْجُنْدِيِّ

**ترجمه**:اودسفراوحضرقضاشوي لمونځونه دوه اوڅلوراداء کيږي ،اوپه دي کې دلمانځه داخري وخت اعتباردى، اوګنهګاردغيرګنګهارپه شان دى ،اومعتبردى داصل نيت په سفراواقامت کې نه دتبع نيت لکه ښځه ،نوکراوسپاهي.

**تشريح**:(۳۲۹) يعنى که له چاڅخه دسفرپه حالت کې څلوررکعتى لمونځ قضاء شواوپه حضرکې يې اداء کاوو نودوه رکعته قضاء به اداء کوي اوکه په حضرکې رباعى لمونځ فوت شواوپه حالت سفرکې يې قضاء راوړله نوڅلوررکعته به قضاء اداء کوي ولى چې قضاء داداء مطابق وي يعنى لمونځ چې په کوم شان پرذمه ثابت شي دوخت له تيريدلوڅخه وروسته په دي کې تغيرنه راځي.

ف:که کوم کس په سفرکې دقصرپرځاى سهوادټول لمانځه نيت وکړيايې په حضرکې دټول لمانځه پرځاى دقصرنيت وکړنوپه لمانځه کې دښه دي دنيت تصحيح وکړي مګرپه ژبه سره دي دنيت الفاظ نه وايي په زړه کې دي نيت وکړي .(احسن الفتاوى:۴/۷۷)

(۳۳۰) قوله والمعتبر فيه اخر الوقت اى المعتبر فى كل واحد من السفر والاقامة اخر الوقت ،يعنى په مقيم او مسافر والى كې دلمانځه داخري وخت اعتبار دى ولى چې كله كوم كس په اول وخت كې لمونځ اداء نه كړي نو دده دلمانځه لپاره سبب همدا اخري وخت دى لهذا په اخرى وخت كې چې دى په كوم صفت سره متصف وي نو هغه به معتبروي مثلاً كه دمازديگر په اخري وخت كې كوم مقيم مسافر شو نو دوه ركعته لمونځ به اداكوي كه يې تر واسه لمونځ نه وي كړى او كه مسافر دمازديگر په اخرى وخت كې خپل ښار ته ورسيد او تر اوسه يې لمونځ نه وي اداء كړيې نو هغه به څلور ركعته اداء كوي .

ف: يو كس دمابنام لمونځ اداء كړ او په طياره كې سپور شو او طياره دمغرب لورته دومره تيزه ولاړه چې لمريېرته ښكاره شو نو په دي كس دماښام لمونځ دوهم ځل اداء كول واجب نه دي او كه صائم كس روژه ماته كړي وه نو روژه يې هم صحيح شوه مگر تر دوهم ځل غروب پوري امساك واجب دى .(احسن الفتاوى :۴/۶۹)

(۳۳۱) يعنى سفر كه داطاعت لپاره وي او كه دمعصيت لپاره وي دواړه په رخصت كې برابر دي مثلاً كوم غل دسفر په حالت كې دى او لمونځ اداء كوي نو قصر به كوي ولى چې له كومو نصوصو څخه رخصت ثابت دى هغه على الاطلاق هر مسافر ته شامل دي خواه كه پخپل سفر كې مطيع وي او كه عاصى كقوله ﷺ « فرض المسافر ركعتان » (يعنى دمسافر لمونځ دوه ركعته دى .) او همدا راز نفس سفر معصيت نه دى ولى چې سفر مسافت دقطع كولو نوم دى په كوم كې چې كوم معصيت نشته بلكه معصيت خو له سفر څخه وروسته وي (لكه غلا كول ) يا له سفر سره يو ځاى وي (لكه دنوكر تښيدنه ) له كوم څخه چې دسفر مشروعيت نه ختميږي .

ف: دامام شافعى رحمه الله په نزد دمعصيت سفر درخصت لپاره سبب نشي جوړيداى ولى چې له رخصت څخه مسافر ته تخفيف حاصليږي او تخفيف له داسي شي سره تعلق نشي نيولاى كوم چې سختى واجبوي لهذا رخصت له معصيت سره نشي متعلق كيدلاى ،احناف ځواب وركوي چې درخصت سبب معصيت نه دى بلكه سفر دى په كوم كې چې څه معصيت نشته .

(۳۳۲) يعنى په مسافر والى او مقيم والى كې داصل نيت معتبر دى يعنى كوم شخص چې دبل تابع وي هغه دخپل متبوع په مقيم والى سره مقيم كيږي او دمتبوع په مسافر والى سره مسافر كيږي ولى چې دسفر او اقامت قدرت اصل ته حاصل دى نه تابع ته لهذا دښځې ،غلام او پوځي دنيت اعتبار نشته ولى چې ښځه دميړه تابع دى غلام دبادار او پوځي دامير تابع دى .

ف: داصل نيت دتابع په حق كې هغه وخت معتبر دى چې تابع داصل په نيت خبروي كه نه نو نه ده معتبر ولى چې بي له علمه دتابع په حق كې داصل دنيت معتبرول دتابع په حق كې ضرر دى نو كه تابع سفرانه لمونځ اداء كړيه داسي حال كې چې متبوع داقامت نيت كړى وو او حال دا چې تابع په هغه باندي خبر نه وو نو دده لمونځ صحيح دى او پر ده اعاده لازمه نه ده كما فى التنوير و شرحه ولا بد من علم التابع بنية المتبوع فلو نوى المتبوع الاقامة ولم يعلم التابع فهو مسافر حتى يعلم على الاصح ) و فى الفيض و به يفتى كما فى المحيط وغيره دفعا للضرر عنه (الدر المختار على هامش رد المحتار :۱/۵۸۸)

ف: جنگي بنديانو ته له قرائنو څخه معلومه شوه چې دوئ به پنځلس ورځو په دغه ځاى كې بنديان وي نو پر دوئ اتمام ضروري دى كه نه نو قصر به كوي .(احسن الفتاوى :۴/۷۹)

ف:يوځي او مجاهد دخپل اميرا ووالي په هغه وخت کې تابع دي چې کله ده ته له اميره يا والي او يا بيت المال څخه رزق ورکول کيږي او که دا خلک خپل مصرف په خپله کوي نو بيا د دوئ خپل نيت معتبر دی د امير تابع نه دي كمافي تنوير الابصار: والمعتبرنية المتبوع لانه الاصل لاالتابع كامراة وعبد وجندي اذاكان يرتزق من الامير اوبيت المال قال ابن عابدين الشامي رحمه الله: نعم في الذخيرة ان المتطوع بالجهاد لايكون تبعاللوالي وهو ظاهر (الدر المختار على هامش رد المحتار: ١/٥٨٧)

## بَابُ صَلَاةِ الْجُمُعَةِ

دا باب دجمعې دلمانځه په بيان کې دی

لفظ جمعه دميم په سکون او ضمه دواړوسره ويل شوی دی ،جمعه له اجتماع څخه مشتق ده په دې ورځ دخلګو ديوځای کيدلو له امله ددې نوم جمعه ايښودل شوی دی او يا په دې وجه چې دادم عليه السلام ټول اولاد به په دې ورځ سره راجمع کړای شي او يا په دې وجه چې ادم عليه السلام او حضرت حوا ﷺ په دې ورځ په ځمکه سره يوځای شوي وو .

په جمعه او سفرکې مناسبت دادی چې په دواړو کې تنصيف صلوة دی په سفرکې تنصيف دسفرپه واسطه او په جمعه کې تنصيف دخطبې له امله دی مګرسفردهررباعی لمانځه لپاره منصف دی او خطبه صرف دماپښين دلمانځه تنصيف کوي لهذا جمعه خاص او سفرعام دی او خاص له عام څخه وروسته وي په دې وجه مصنف رحمه الله له صلوة سفرڅخه وروسته صلوة جمعه ذکرکړه ،دجمعې لمونځ فرض دی ددې پرېښودل جائزنه دي ولې چې دا په دليل قطعي سره ثابت ده لهذا ددې منکرکافرکيږي .

(٣٣٣)شَرْطُ أَدَائِهَا الْمِصْرُ (٣٣٤)وَهُوَ كُلُّ مَوْضِعٍ لَهُ أَمِيرٌ وَقَاضٍ يُنَفِّذُ الْأَحْكَامَ وَيُقِيمُ الْحُدُودَ (٣٣٥)أَوْ مُصَلَّاهُ (٣٣٦)وَمِنًى مِصْرٌ لَا عَرَفَاتُ (٣٣٧)وَتُؤَدَّى فِي مِصْرٍ فِي مَوَاضِعَ (٣٣٨)وَالسُّلْطَانُ أَوْ نَائِبُهُ

**ترجمه**:دجمعه داداء کيدلو له شرائطوڅخه ښاردی ،او ښارهغه ځای دی دکوم لپاره چې حاکم او قاضي وي چې احکام نافذوي او حدود جاري کوي ،يا عيدګاه ،او منی ښارده نه عرفات ،او اداء کيدای شي په ښارکې په څوځايونوکې ،او دبادشاه يا دهغه دنائب موجودوالی شرط دی .

**تشريح**:(٣٣٣)قوله شرائطها المصر اى شرائط اداء صلوة الجمعة المصر ،يعنی دجمعه داداء کيدلو لپاره زموږ په نزد ښارضروري دی په کلوا وباندوکې جمعه جائزنه ده ولې چې دنبی کريم ﷺ ارشاد دی «لاجمعة ولاتشريق ولافطر ولااضحى الافي مصر جامع»(يعنی جمعه ،تکبيرات تشريق ،دکوچنې اخترلمونځ او دلوی اخترلمونځ جائزنه ده مګرپه ښارجامع کې).

ف:امام مالک رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په کلوا وباندوکې هم دجمعه په جواز قائل دي ولې چې له حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه مروی ده ان اول جمعة جمعت في الاسلام بعد المدينة ماجمعت بجواثي وهي قرية في البحرين (يعنی په اسلام کې له مدينې منورې څخه وروسته اوله جمعه په جواثی کې اداء کړای شوه او جواثی په بحرين کې يوه قريه ده ).احناف ځواب ورکوي چې په حديث شريف کې له قريه څخه مرادکلی نه دی بلکه ښاردی ولې چې دقريه اطلاق پرښارباندی هم هم کيږي كمافي قوله تعالى ﴿لَوْلَا نُزِّلَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ﴾ له قريتين

ځخه مرادمكه مكرمه اوطائف دى اومكه مكرمه يقينابناردى لهذاپه حديث شريف كښ هم له قريه ځخه مرادښاردى ،همداراز جواثاء ديوي قلعي نوم دى اوقلعي لپاره حاكم اوعالم ضروري وي په دي وجه داويل صحيح دي چې جواثاء ښاردى.

(۳۳۴)دمصرتعريف له امام ابوحنيفه رحمه الله ځخه منقول دى چې مصرهغه جامع دى چيرته چې سركونه وي ،بازاروي ،حاكم وي چې دظالم اومظلوم ترمنځ انصاف كوي اوعالم وي چې په نويو پيښيدونكومسائلوكي فتوى وركوى ،له امام ابويوسف رحمه الله ځخه دمصرجامع په باره كښ دوه روايتونه منقول دي /نمبر۱. مصرجامع هغه ځاى دى په كوم كښ چې اميراوقاضى وي كوم چې احكام جارى كوي اوشرعى حدودنافذوي ،مراددادى چې دشرعى حدودوپرنفاذقادروي بالفعل جاري كول شرط نه دي ./نمبر۲. مصرجامع هغه ځاى دى چې دهغه ځاى په ترټولولوى مسجدكښ كه هغه خلك جمع شي چې پرفرض ده نوپه هغه مسجدكښ نه ځايږي.

ف:دمصرجامع په باره كښ له فقهاء كرامو ځخه ډيراقوال منقول دي ليكن حقيقت دادى چې مصرله هغو اصطلاحاتو ځخه دى دكوموچې مدارپرعرف دى اوداخبره هم واضحه ده چې دزماني په تغيرسره په دي علاموكښ هم تغيرراغلى دى په دي وجه چې ځومره تعريفات دي هغه دخپلوزمانوپه اعتبارسره دي ،كمافي فيض البارى:واعلم ان القرية والمصرمن الاشياء العرفية التى لاتكادتنضبط بحال وان نص ولذاترك الفقهاء تعريف المصرعلى العرف كماذكره فى البدائع وانماتوجهواالى تحديدالمصرالجامع لهذه الحدودكلهابعدكونهامصراقان المصرالجامع اخص من مطلق المصرفقديتحقق المصرولايكون جامعا(فيض البارى:۳۲۹/۲)

ف:اكثرمتأخرينو احنافوپردي باندي فتوى وركړي ده چې كه دكوم ځاى په ترټولولوى مسجدكښ كه دهغه ځاى هغه ټول خلك چې پرهغوئ جمعه فرض ده راجمع شي نوپه هغه مسجدكښ نه ځايږي نوپه داسي ځاى كښ دجمعه لمونځ صحيح دى لمافى الفقه الاسلامى وادلته:لكن المفتى به عنداكثرالحنفية ان المصركما قدمناوهومالايسع اكبرمساجدهااهلهاالمكلفين بالجمعة وهذاشرط وجوب وصحة (فقه الاسلامى وادلته:۲۹۳/۲)وفى الدرالمنتقى:وقيل مالواجتمع اهله فى اكبرمساجدلايسعهم وعليه فتوى اكثرالفقهاء كمافى المجتبى لظهورالتوانى فى الاحكام(الدرالمنتقى:۲۴۷/۱)

حضرت مولانامفتي محمدكفايت الله صاحب دهلوى ليكى:چې په مالايسع اكبرمساجدوالا تعريف باندي ډيروحنفى مشائخوفتواوركړي ده دتنفيذاحكام اواقامت حدودوالا تعريف نن صباپه كوم ښارباندي نه صادقيږي اوقدرت على التنفيذتاويل هم په اقامت حدودكي صحيح نه دى ولى چې حدودشرعيه دمروجه قانون ماتحت ممتنع الاقامت دي كوم حاكم حتى چې وايسرائ هم په رجم باندي قدرت نه لري په لاس پريكولوقدرت نه لري په دي وجه دادجمعه دجوازلپاره مدارحكم جوړول په هيڅ نوع سره صحيح نه دي الخ دمصرمتعددتعريفونه منقول دي په دي وجه په دي مسئله كښ دډيري سختى موقع نشته اوددي زماني مصالح عامه مهمه ددي مقتضى دي چې دجمعه اقامت بندنه شي نوبنه خبره ده .(كفايت المفتى:۲۴۵/۳)

(۳۳۵)قوله اومصلى المصراى شرط ادائهاالمصراومصلى المصر،يعنى دمصرپه مصلى كښ هم دجمعه اقامت صحيح دى، دښارمصلى عيدگاه وي مگردلته له مصلى ځخه فناء ښارمراده ده صرف عيدگاه مرادنه ده اوفناء

ښاردښارشاوخواته ويل کيږي کوم چې له ښارسره متصله اودښاردخلکودمختلفو ضرورتونودپوره کولولپاره وي لکه هديره،داسانودمنډو ميدان،څرځاى اوعيدګاه وغيره ،اوپه فناء ښارکې دجمعه دجواز وجه داده چې داهل ښاردضرورتونوپه پوره کولوکې فناء ښاردښارمرتبه لري.

(۳۳۶)منى ښارده ولې چې منى دحج موسم کې ښارجوړيږي ولې چې دحج په موسم کې هلته بازارلګيږي بادشاه يادهغه ځاى ناستى هلته موجودوي لهذادشيخينوپه نزدپه منى کې جمعه قائمول جائز ده ، مګرداخترلمونځ دتخفيف له کبله نه اداء کيږي ولې چې په دي ورځ حجاج دحج په مناسکو بوخت وي اووخت ډيرکم وي په کوم کې چې دحج له مناسکوسره سره داختردلمانځه داداء کولوګنجائش نه وي په داسي حال کې چې دامام محمد رحمه الله په نزدځرنګه چې منى يوه ګاون ده لهذاهلته جمعه صحيح نه ده اوعرفات ښارنه ده ولې چې عرفات صرف يوه فضاء ده حال داچې منى کې تعميرات کورونه اوکوڅې دي.

ف:دشيخينوقول راجح دى لمافي تنويرالابصاروشرحه:وجازت الجمعة بمنى في الموسم فقط لوجودالخليفة اوامير الحجاز اوالعراق اومكة ووجودالاسواق والسكك وكذافي ابنية نزل بهاالخليفة وعدم التعيد بمنى للتخفيف ولاتجوز بعرفات لانهامفازة (الدرالمختار على هامش ردالمحتار:۱/۵۹۵)

(۳۳۷)په يوه ښارکې په څوځايونوکې دجمعه لمونځ کول جائز دي که ښارلوى وي اوکه کوچنى وي ولې چې په يوځاى دټول ښاردخلکوپه رايوځاى کيدلوکې حرج دى اوحرج شرعاًمدفوع دى لهذاضرورت په اساس په يوه ښارکې په څوځايونوکې دجمعه لمونځ اداء کول جائز دي اوهمداراز حديث شريف لاجمعة الافي مصرمطلق دى په کوم کې چې داقيدنشته چې په ښارکې صرف په يوه ځاى کې دجمعه رواده كذافي الشامية :(قوله على المذهب )فقدذكرالامام السرخسي ان الصحيح من مذهب ابى حنيفة جواز اقامتها في مصرواحدفي مسجدين واكثروبه ناخذلاطلاق لاجمعة الافي مصرشرط المصرفقط (ردالمحتار:۱/۵۹۵)ليکن حتى الامکان بايدچې يوه ځاى کې سره راجمع شي اودجمعه لمونځ اداء کړاى شي.

(۳۳۸)قوله والسلطان اونائبه مرفوع دى په المصرباندي عطف دى اى شرط اداء صلوة الجمعة السلطان اونائبه يعنى دجمعه داداء کولولپاره دخليفه يادهغه دنائب موجودوالى ضروري دى ولې چې جمعه په ډيره جماعت سره اداکيږي نوپه دي کې کله کله په تقدم اوتقديم کې جنجال واقع کيږي مثلايوبه وايې چې زه امامت کوم اوبل به وايې چې زه امامت کوم يوه طائفه به وايې چې موږفلانکى امام جوړوو اوبله به وايې چې يافلانکى امام دى نوداسي فتنودفع کولولپاره دخليفه يادهغه دنائب وجودضروري دى.

ف:دامام شافعى رحمه الله په نزددسلطان يادهغه دځاى ناستى وجودشرط نه دى ولې چې حضرت عثمان رضي الله عنه دخپل خلافت په اخري وخت کې په مدينه منوره کې محاصره وو اوحضرت على رضي الله عنه خلګوته دجمعى لمونځ ورکړحال داچې په دي وخت کې حضرت عثمان رضي الله عنه خليفه وو ،احناف ځواب ورکوي چې کيداى شي حضرت على رضي الله عنه دحضرت عثمان رضي الله عنه په حکم سره دجمعه دلمانځه امامت کړى وي.

ف:داحنافوپه نزدباندي هم که له بادشاه څخه اجازه اخيستل متعذروو ياکوم ملک (العياذبالله)دکفاروپه غلبه سره دارالحرب جوړشونوپه دي وخت کې که خلک دکوم کس په امامت سره دجمعه په اداء کولومتفق شول نوددوئ لمونځ صحيح دى اودسلطان اودهغه دځاى ناستى شرط ختميږي كمافي الهندية :ولوتعذرالاستيذان من

الامام فاجتمع الناس على رجل يصلى بهم الجمعة جاز (هنديه: ١/١٤٦) وفى فيض البارى: وقد صرح اصحابنا ان الملك اذا صار دار الحرب يجمع بهم من اتفق عليه القوم (فيض البارى: ٢/٢٣٠)

(٣٣٩) ووقت الظهر فتبطل بخروجه (٣٤٠) والخطبة قبلها (٣٤١) وتسن خطبتان بجلسة بينهما وبطهارة قائما (٣٤٢) وكفت تحميدة او تهليلة او تسبيحة

**ترجمه**: او دماپشين وخت ورته شرط دى نو باطليږي په تيريدلو سره دماپشين د وخت، او خطبه شرط ده د جمعې له لمانځه څخه مخکې، او سنت دي دوه خطبې دد واړو په منځ کې په يو څه ناسته سره او په پاکې سره او په ولاړه سره، او کافي ده الحمد لله يا لااله الاالله يا سبحان الله ويل

**تشريح**: (٣٣٩) قوله ووقت الظهر اى شرط اداء صلوة الجمعة وقت الظهر، دجمعې له شرائطو څخه وخت هم دى يعنى د جمعې لمونځ دماپشين په وخت کې صحيح دى دماپشين دوخت په تيريدلو سره باطليږي ولى چې نبى كريم ﷺ چې کله مصعب ابن نمير مدينه منورې ته وليږدا و ونوورته ويې فرمايل ﴿اذا مالت الشمس فصل بالناس الجمعة﴾ (کله چې لمرزائل شي نو خلکوته دجمعې لمونځ ورکړه) او همدارازنبى كريم ﷺ په خپل ټول ژوندکې کله هم نه له زوال څخه مخکې اونه دماپشين دلمانځه دوخت له تيريدلو څخه وروسته اداء کړى دى بلکه هميشه به يې له زوال څخه وروسته جمعه اداکوله لهذا له خروج وخت وروسته جائز نه ده.

**الالغاز**: اى فريضة يجب ادائها ويحرم قضائها؟ **فقل**: الجمعة (الاشباه والنظائر)

(٣٤٠) قوله والخطبة قبلها اى شرط اداء صلوة الجمعة الخطبة قبلها، يعنى دجمعې له شرائطو څخه يو شرط دخطبې ويل دي لهذا بغيرله خطبې ويلو څخه جمعه نه صحيح کيږي ولى چې نبى كريم ﷺ په خپل ټول ژوندکې يوه جمعه هم بغيرله خطبې نه ده اداء کړي، او خطبه دجمعه له لمانځه وړاندې اوله زوال څخه وروسته واجب ده ولى چې شرط له مشروط څخه مخکې وي.

(٣٤١) اودوه خطبې دي ووايې اودواړوترمنځ دي ددريو ايتونو په اندازه ناستې سره دي فصل وکړي ولى چې دا په تعامل اوتوارث سره ثابته ده، او همدارازحضرت جابربن سمره ﷺ فرمايې چې نبى کريم ﷺ به په پيل کې په ولاړه سره يوه خطبه ويله بيايې دضعف په زمانه کې دوه خطبې ويلې اوددواړوپه منځ کې به لږ اندازه کشيناسته، او خطبه دي دطهارت په حالت کې په ولاړه سره وايې ولى چې په ولاړه سره خطبه ويل له اسلافو څخه متوارث دى اوداذان په شان په خطبه کې هم کې طهارت مستحب دى.

(٣٤٢) دخطبې په مقدارکې دعلماو اختلاف دى دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد که يې دخطبې په نيت سره صرف الحمد لله، ويله يا سبحان الله يا لااله الاالله ويله نو مع الكراهت جائز ده، دصاحبينو په نزد دومره اندازه اوږد ذکرضروري دى کوم ته چې په عرف کې خطبه ويل کيږي لهذا لږترلږه بايد دتشهد په اندازه وي، دصاحبينو دليل دادى چې واجب خوخطبه ده اوصرف الحمد لله يا سبحان الله يا لااله الاالله ته په عرف کې خطبه نه ويل کيږي دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دالله تعالى ارشاد ﴿فاسعوا الى ذكر الله﴾ (يعنى منډه کړئ دالله ذکرته) دى په کوم کې دذکرطويل اوقليل کوم تفصيل نشته.

**ف**. دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دى لماقى الدر المختار: وكفت تحميدة اوتهليلة اوتسبيحة للخطبة المفروضة مع الكراهة وفى ابن عابدين (قوله مع الكراهة) ظاهر القهستانى انها تنزيهية (الدر المختار على هامش رد المحتار: ١/٥٩٨، هنديه: ١/١٤٦)

ف:دخطبې څه مستحبات دي ،/نمبر۱.خطبه دي په دومره لوړاواز سره ووايې چې خلک يې واوري اوپه دوهمه خطبه کې د ي داولې خطبي څخه اواز لږکشته وي ،نمبر۲.خطبه دي په الحمدلله سره شروع کړي ،/نمبر۳.په خطبه کې دشهادتين وايي ،/نمبر۴.درودشريف دي ووايې ،/نمبر۵.وعظ اونصيحت دي وکړي ،/نمبر۶.دقران کريم دي لږترلږه يولوى ايت يادري کوچني ايتونه ولولې .

ف:که خطيب په ناسته سره خطبه ولوستله يايې بې اودسه خطبه ولوستله يايې ددواړوخطبوپه منځ کې فصل ونه کړيايې دخطبې دلوستلوپه وخت کې خلکوته شاورګرځولې وه نودحصول مقصودله امله جائزخوده مګردسلفو دعمل دمخالفت له کبله مکروه ده كمافى اللباب (وان خطب قاعدااوعلى غيرطهارة )اولم يقعدبين الخطبتين اواستدبرالناس(جازويكره)لمخالفته المتوارث(اللباب على هامش الجوهرة:۵/۱۱۱)

(۳۳۳)وَالْجَمَاعَةُ وَهُمْ ثَلَاثَةٌ سِوَى الْإِمَامِ فَإِنْ نَفَرُوا قَبْلَ سُجُودِهِ بَطَلَتْ (۳۳۴)وَالْإِذْنُ الْعَامُّ (۳۳۵)وَشَرْطُ وُجُوبِهَا الْإِقَامَةُ وَالذُّكُورَةُ وَالصِّحَّةُ وَالْحُرِّيَّةُ وَسَلَامَةُ الْعَيْنَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ (۳۳۶)وَمَنْ لَا جُمُعَةَ عَلَيْهِ إنْ أَدَّاهَا جَازَ عَنْ فَرْضِ الْوَقْتِ (۳۳۷)وَلِلْمُسَافِرِ وَالْعَبْدِ وَالْمَرِيضِ أَنْ يَؤُمَّ فِيهَا وَتَنْعَقِدُ بِهِمْ

ترجمه:اوجماعت شرط دى اوهغه دري خلک دي له امام څخه ماسوانوکه هغوئ وتښتيدل دامام له سجدي کولو څخه وړاندي نوجمعه باطليږي ،اواذن عام شرط دى ،اودجمعې دوجوب له شرائطو څخه مقيم والى ،نروالى ،روغ والى ،ازادوالى ،اودسترګواوپښوجوړوالى دى،اوپه چاچې جمعه واجب نه ده که هغه جمعه اداء کړه نوکفايت کوي دوخت له فرضو څخه ،اودمسافراومريض اوغلام لپاره جائزده چې دجمعې امامت وکړي اوپردوئ باندي جمعه منعقده کيږي .

تشريح:(۳۳۳)قوله والجماعة اى شرط اداء صلوة الجمعة الجماعة ،يعنى دجمعې له شرائطو څخه يوشرط جماعت دى،دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدله امام څخه ماسوالږترلږه ددريومقتديانووجودضروري دى ،دصاحبينوپه نزدله امام څخه ماسوادودمقتديانووجودضروري دى ،اصح قول دادى چې امام محمد رحمه الله له امام ابوحنيفه رحمه الله سره دى ،دامام ابويوسف رحمه الله دليل دادى چې دجمع لغوى معنى يوځاى کيدل دي اوپه دووکې داجتماع معنى سته لهذاله امام څخه ماسواددوو خلکوموجودوالى دجمعې دجوازلپاره کفايت کوي ،اودطرفينودليل دادى چې جمع صحيح دري دي ولى چې دري دنامه اومعنى دواړوپه لحاظ سره جمع ده .

ف:دطرفينوقول راجح دى كمافى الدرالمختارمع الشامية :والسادس الجماعة واقلهاثلاثة رجال ولوغيرالثلاثة الذين حضرواالخطبة سوى الامام لانه لايلمن الذاكروهوالخطيب وثلاثة سواه هذاعنداابى حنيفه رحمه الله ورجح الشارحون دليله واختاره المحبوبى والنسفى كذافى تصحيح الشيخ قاسم(الدرالمختارمع الشامية:۱/۳۰۰)

ف:مګرسوال دادى چې دامام ابويوسف رحمه الله دقول مطابق هم له امام سره دري جوړيږي ددي ځواب دادى چې جماعت عليحده شرط دى اوامام بيل شرط دى لهذاامام په دي جماعت کې نه شمارل کيږي ،بيادامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دمقتديانووجوداول رکعت تراولې سجدي پوري ضروري دى لهذاکه له اولنى سجدي وروسته مقتديان وتښتي نوامام دي يواځې جمعه پوره کړي.

(۳۴۴)قوله والاذن العام ای شرط اداء صلوة الجمعة الاذن العام للواردین لها، يعنى د جمعې له شرائطو څخه يو شرط دادى چې د جمعې داداء کولولپاره به اذن عام وي يعنى هرچاته به د راتلو اجازه وي د چاله طرفه به کوم چاته څه مانع نه وي ولى چې جمعه د اسلام له شعائرو څخه ده لهذا ددي د اقامت لپاره عامه اجازه شرط ده ، نوکه سلطان له خپلو ساتونکو سره په خپل کورکې جمعه اداء کول وغواړي په کوم کې چې عامو خلکوته اجازه نه وي نو دا جائز نه ده .

ف:که کومه ابادي په دې دول سره وي چې په هغه کې معتدبه خلک اوسيږي اوهغه په ښارکې دننه هم وي مگر دفاعى، یاانتظامي اوياحفاظتي وجوه له امله دي ابادي ته دهرچادراتلو اجازه نه وي بلکه هغه ځای ته ننوتل ددي وجوه په اساس دڅه خاصو قواعدو پابندوي نو ددي ابادي په کومه برخه کې په داسې ځای کې جمعه اداء کول جائز دي چيرته چې دهمدي ابادي خلکوته دراتلو اجازه وي مثلالويه بندي خانه ،پوځي چاونى ،لويې کارخانې داسې لوى دطيارومیدان کوم چې په ښارکې دننه وي اوپه هغه کې سلهاوخلک هروخت موجودوي ليکن په هغه کې دننه کيدلو اجازه دخاصو قواعدو پابنده وي نوپه دي ټولوځايونو کې جمعه جائزده په دي شرط چې په ښارکې دننه وي اودټولې کارخانې ،یادریل کاډي داسټيشن یادطیارودمیدان ټولو خلکوته به د جمعه په لمانځه د شامليد و اجازه وي .(فقهى مقالات :۴/۳۸)

(۳۴۵)پورته ذکرشوي شرطونه دجمعې دصحت وو دجمعې دوجوب شرطونه دادي (۱)مقيم والى په مسافرباندي جمعه واجب نه ده ولی چې دمسافرلپاره جمعه ته په حاضريدلوکې حرج دی (۲)نروالى په ښځه دجمعه لمونځ واجب نه دى ولى چې ښځه دخاوندپه خدمت بوخته وي (۳)روغ والى په مريض جمعه واجب نه ده ولى چې په مريض باندي جمعه ته حاضريدلوکې حرج دی (۴)ازادوالى په غلام باندي جمعه واجب نه ده ولى چې غلام دمولى په خدمت باندي بوخت وي (۵)بيناوالى په ړانده باندي جمعه واجب نه دى خواه که هغه کوم لارښودوي که نه وي ولى چې ړانده لره جمعه ته په حاضريدلوکې حرج دى اوقادربقدرة الغيرقادرنه گڼل کيږي (۶)دپښوروغ والى په گود باندي جمعه واجب نه ده ولى چې جمعه ته په راتلوکې حرج دی.

ف:علامه شامی رحمه الله فرمایې په داسې ړانده باندي جمعه واجب ده کوم چې په بازارکې بې له لارښود څخه بې تکليفه گرځيدای شي اوله خلکوڅخه له پوښتنې ماسواکوم مسجدته تلای شي قال والقول بل یظهرلی وجوبها على بعض العمیان الذى یمشى فى الاسواق ویعرف الطرق بلاقائد ولا کلفة ویعرف ای مسجداراده بلاسوال احدلانه حینئذ کالمریض القادر على الخروج بنفسه بل ربما تلحقه مشقة اکثرمن هذاتامل (ردالمحتار:۲/۶۰۲)

(۳۴۶)که چيرته پورته ذکرشوي خلک له کوموڅخه چې جمعه ساقطه ده دجمعې لمانځه ته حاضرشي اوله نورو خلکو سره یوځای دجمعې لمونځ اداء کړي نو ددوئ دوخت فريضه اداء شوه ولی چې له دوئ څخه دجمعې سقوط دحرج له کبله وو نوکله چې دوئ حرج اومشقت برداشت کړاوهمت يې وکړدجمعې لمونځ يې اداء کړنوداخلک دهغه مسافرپه شان شول کوم چې دسفرپه حالت کې روژه ونيوله لکه څرنگه چې دهغه روژه صحيح ده همداشان ددوئ لمونځ هم صحيح دى.

(۳۴۷)قوله وللمسافر والعبد والمريض ان يؤم فيها اى وجاز للمسافر والعبد والمريض ان يؤم فى الجمعة ،يعنى په مسافر،غلام او ناروغ وغيره (ماسوا له ښځې او نابالغ هلكه )باندې كه څه هم جمعه فرض نه ده بيا هم دوئ په جمعه كې امام جوړل جائز دي ولى چې په دوئ باندې د جمعه نه فرض كيدل د دفع حرج لپاره بطور رخصت وو مگر كله چې داخلك جمعه ته حاضر شول او مشقت يې برداشت كړنو د المونځ فرض واقع كيږي او كله چې د دوئ لمونځ فرض واقع شو نو دوئ لره امام جوړول هم جائز دي ،همدا راز كه صرف همدا خلك له امام سره وړيدل نو د جمعه لمونځ جائز دى ولى چې داخلك د جمعې په لمانځه كې امام جوړيداى شي نو په طريقه اولى سره مقتدى جوړيداى شي كمافى شرح المنير (وتنعقد) الجمعة (بهم) اى بحضورهم بالطريق الاولى. قال ابن عابدين: وذالك لانهم لما صلحوا للامامة فلأن يصلحوا للاقتداء اولى (الدر المختار مع رد المحتار ۱/۶۰۳)

(۳۴۸)وَمَنْ لَا عُذْرَ لَهُ لَوْ صَلَّى الظُّهْرَ قَبْلَهَا كُرِهَ (۳۴۹)فَإِنْ سَعَى إِلَيْهَا بَطَلَ (۳۵۰)وَكُرِهَ لِلْمَعْذُورِ وَالْمَسْجُونِ أَدَاءُ الظُّهْرِ بِجَمَاعَةٍ فِي الْمِصْرِ (۳۵۱)وَمَنْ أَدْرَكَهَا فِي التَّشَهُّدِ أَوْ فِي سُجُودِ السَّهْوِ أَتَمَّ جُمُعَةً

**ترجمه**،او څوک چې كوم عذرونه لري نو كه ده د جمعې له لمانځه څخه مخكې د ماپښين لمونځ اداء كړنو مكروه ده،نو بيا كه دى د جمعې لمانځه ته ولاړى نو د ماپښين لمونځ يې باطليږي ،او مكروه ده معذور او بندى لره د ماپښين لمونځ په جماعت سره اداء كول په ښاركې دننه ،او كه چا جمعې لمونځ پيدا كړ په تشهد كې يا په سجده سهوكې نو جمعه دې پوره كړي .

**تشريح** :(۳۴۸)يعنى كه يو چا جمعې په ورځ د جمعې له لمانځه څخه مخكې په خپل كوركې د ماپښين لمونځ اداء كړنو دده دا لمونځ جائز دى مگر مكروه تحريمي دى ولى چې د جمعې په ورځ خو اصلا د ماپښين لمونځ فرض دى لكه څرنگه چې په نوروورځوكې د ماپښين لمونځ فرض دى ولى چې تكليف حسب قدرت وي او په دې وخت كې مكلف بذات خود د ظهر په اداء كولو قادر دى نه د جمعه په اداء كولو ولى چې جمعه په داسې شرائطوپسې موقوفه ده كوم چې په تنهايوه سرى باندې نه پوره كيږي مثلاد امام موجود والى ،جماعت ،نو ثابته شوه چې اصل فريضه د ظهرده او ده په خپل وخت كې اداء كړه لهذا صحيح ده مگر څرنگه چې حكم دا دى چې د ظهر لمونځ د جمعې په لمانځه سره ساقط كړئ په دې وجه د ظهر اداء كول مكروه دي .

**ف** :د امام زفر رحمه الله او نوروائمه و په نزد له جمعې څخه مخكې په كوركې د ماپښين لمونځ اداء كول جائز نه دي ولى چې د دوئ په نزد د جمعې په ورځ اصلا د جمعې لمونځ فرض دى د ظهر لمونځ د هغه بدل دى او ترڅو چې په اصل باندې قدرت وي نو د بدل لورته رجوع نشي كيداى لهذا د جمعې په لمانځه د قدرت په صورت كې د ماپښين لمونځ اداء كول صحيح نه دي .

(۳۴۹)يعنى كه د جمعې په ورځ د ماپښين لمونځ په كوركې له اداء كولو وروسته دده رايه دا شوه چې د جمعې لمانځه ته به ځم نو د جمعې لمانځه ته روان شو او حال دا چې امام تراوسه د جمعې له لمانځه څخه نه وو فارغ شوى نو د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دا دى چې له كور څخه له روانيدو سره يوځاى دده د ظهر د لمانځه فرضيت باطليږي او دا لمونځ نفل كيږي او د صاحبينو په نزد په صرف روانيدو سره لمونځ نه باطليږي بلكه د جمعې په لمانځه كې په شركت كولو سره باطليږي، د صاحبينو دليل دا دى چې د جمعې لمانځه ته تلل بذاته مقصود نه دي بلكه د جمعه د اداء كولو وسيله ده او ظهر فرض مقصود دى په دې وجه

سعى الى الجمعة دماپښين دلمانځه په نسبت ادنى ده او قاعده داده چې په ادنى سره اعلى نه باطليږي لهذا په محض سعى الى الجمعة سره ظهرنه باطليږي ،دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادى چې سعى الى الجمعة دجمعې له خصائصو څخه دى لهذا ظهر په باطلولو كې احتياطا دجمعې دلمانځه مرتبه لري .

**ف**: دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجع دى لمافى ردالمحتار: واطلق فى البطلان فشمل مااذالم يدركها لبعد المسافة مع كون الامام فيها وقت الخروج اولم يكن شرع قال فى السراج وهو الصحيح حتى لوكان بيته قريبا من المسجد وسمع الجماعة فى الركعة الثانية فخرج بعدما صلى الظهر فى منزله بطل الظهر على الاصح (ردالمحتار: ۱/۶۰۸)

(۳۵۰) يعنى كه معذورو خلكو مثلا ړندو يامريضانو او غلام وغيره دجمعې په ورځ په ښاركې دجمعې له لمانځه څخه وړاندې يا وروسته دماپښين لمونځ په جماعت سره اداء كړنو دا عمل مكروه تحريمى دى همدا حكم دبنديانو هم دى ولى چې دجمعې په ورځ دماپښين دلمانځه په جماعت سره په اداء كولو كې په ظاهري صورت دجمعې مقابله او معارضه معلوميږي ،او همدا راز په دې وجه هم چې ممكن ده چې څه غير معذور خلك هم جمعه پريږدي او له معذورو خلكو سره په جماعت كې شامل شي له كوم څخه چې دجمعې په جماعت كې تقليل واقع كيږي .

(۳۵۱) يعنى كه چا دجمعې په ورځ امام دجمعې په لمانځه كې وموندنو كه يې يو ركعت دجمعې لمونځ له امام سره وموندا و هغه يې له امام سره اداء كړنو بالاتفاق به پردې باندې جمعه بناء كړي او كه يې امام دجمعې په لمانځه كې په تشهد يا سجده سهو كې وموندنو دشيخينو په نزد دې دا كس دجمعې لمونځ پور كړي ولى چې دكس جمعه موندونكى دى حتى چې دده لپاره دجمعې نيت شرط نه دى او دجمعې دلمانځه موندونكى به جمعه اداء كوي نه دماپښين لمونځ .

**ف**: دامام محمد رحمه الله په نزد كه چيرته ده ددوهم ركعت اكثره برخه له امام سره وموندله مثلا په ركوع كې له امام سره شريك شونو دجمعې لمونځ به پوره كوي او كه له ركوع څخه وروسته شريك شونو دماپښين لمونځ به پوره كوي ولى چې ددې كس په حق كې دجمعې ځينې شرائط (مثلا جماعت) فوت شو ولى چې دا كس به دامام له سلام څخه وروسته يو اځې لمونځ دجمعې اداء كوي نو دا لمونځ من وجه دجمعې لمونځ دى او من وجه دماپښين لمونځ دى نو لهذا دماپښين په اعتبار كولو سره به دا كس څلور ركعته لمونځ اداء كوي .

**ف**: دشيخينو قول راجع دى لمافى الدر المختار مع الشامية: ومن ادركها فى تشهد او سجود سهو على القول المفتى به فيهما يتمها جمعة خلافا لمحمد: قال ابن عابدين: لم ذكر عن بعضهم انه يصير مدركا بلا خلاف وقال وهو الصحيح (الدر مع الشامية: ۱/۲۰۵)

(۳۵۲) وَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ فَلَا صَلَاةَ وَلَا كَلَامَ (۳۵۳) وَيَجِبُ السَّعْيُ وَتَرْكُ الْبَيْعِ بِالْأَذَانِ الْأَوَّلِ (۳۵۴) فَإِنْ جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ أُذِّنَ بَيْنَ يَدَيْهِ (۳۵۵) وَأُقِيمَ بَعْدَ تَمَامِ الْخُطْبَةِ

**ترجمه**: او كله چې امام دخطبې لپاره راووځي نو بيانه لمونځ شته او نه خبرې ،او واجب دى دجمعې لپاره تلل او اخيستل خرڅول پريښودل په اول اذان سره ،نو چې كله په منبر باندې كښيني نو اذان دې وكړل شي دده مخامخ ،او اقامت دې وكړل شي له خطبې څخه وروسته

**تشريح**: (۳۵۲) يعنى دجمعې په ورځ چې كله امام دخطبې لپاره له خپلې حجرې څخه راووځي يا كه په صف كې وو نو په منبر دختلو لپاره ودريږي نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دې خلك نه نوافل كوي او نه سنتونه

اونه دي خبري كوي ترڅوچې امام له خطبې اولمانځه څخه فارغ شي ولې چې له حضرت ابن عمر او حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی ﴿ان النبی ﷺ قال اذاخرج الامام فلاصلاة ولاكلام﴾ (يعنی كله چې امام راووځي نونه لمونځ شته اونه خبري )په حديث شريف كې له خطبې څخه وړاندي اوله خطبې څخه وروسته هيڅ تفصيل نشته لهذاامام له خروج څخه وروسته مطلقاصلوة اوكلام ممنوع دی،دصاحبينو په نزدخطبې له پيل كېدوڅخه وړاندي اوله خطبې څخه وروسته له تكبيرويلوړاندي په خبروكولوكې څه مضائقه نشته ولې چې دكلام كراهت خودخطبې داوريدلوپه فرض كې دخلل اچولوله كبله دی اوپه مذكوره وختونوكې څه اوريدل نشته په دي وجه كراهت هم نشته .

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی :لمافی الدرالمختار:اذاخرج الامام من الحجرة ان كان فيهاوالافقيامه للصعود فلاصلوة ولاكلام الی تمامهافی الاصح (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:١/٦٠٥)

ف:هوصاحب ترتيب كس قضاء لمونځ اداء كولی شي ولې چې له دي څخه بغيردجمعې لمونځ صحيح نه دی اوپه كوم لمانځه كې چې يې په دي وخت كې شروع كړي ده دهغه اداءكولواجازه شته ولې چې په شروع سره لمونځ لازميږي كمافی شرح التنوير:(خلاقضاء فائتة لم يسقط الترتيب بينهاوبين الوقتية )فيهالاتكره سراج وغيره لضرورة صحة الجمعة والاولوخرج وهوفی السنة اوبعدقيامه لثالثة النفل يتم فی الاصح (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:١/٦٠٦)

(۳۵۳)يعنی كله چې مؤذن دجمعې په ورځ اول اذان وكړي نوپه همدي وخت كې دجمعې لمانځه ته تلل اواخيستل خرڅول پريښودل واجب دي لقوله تعالی ﴿فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ (تاسې دالله دذكرلورته ولاړشئ اواخيستل خرڅول پريږدئ ).

(۳۵۴)كله چې امام منبرته پورته شي اوكښيني نومؤذن دي دمنبرمخامخ اذان وكړي ولې چې همدامتوارث دی دنبی كريم ﷺ په زمانه كې صرف همدادوهم اذان وو په همدي وجه دځينومشائخوپه نزدسعی په واجبوالی اوديبع په حراموالی كې دغه اذان معتبردی .

ف:مگراصح دداه چې اول اذان معتبردی لمافی الدرالمختارمع الشامية:فكل ماحرم فی الصلوة حرم فيهاووجب سعی اليهاوترك البيع بالاذان الاول فی الاصح والاصح انه الاول باعتبارالوقت وهوالذی يكون علی المنارة بعدالزوال (الدرالمختارمع الشامية:١/٦٠٧)

ف:نن صبادجمعې له لمانځه څخه مخكې تقريركول رواج شوي دي دكوم له امله چې داول اذان اوخطبې ترمنځ ديروخت وركول كيږي په دي وجه دگناه سبب دمسجدمنتظمين دی په منتظمينولازمه ده چې داذان اول اوخطبې ترمنځ دي ديرفصل نه كوي (احسن الفتاوی ۴/۱۲۴)نه خبره داده چې خطيب صاحب دي اول تقريروكړي بيادي اول اذان وشي اوسنت دي اداءكړل شي بيادي دوهم اذان اوخطبه وويل شي .

(۳۵۵)بيادي له همدي دوهم اذان څخه وروسته امام خطبه ووايي اوله خطبې څخه وروسته دي لمونځ شروع كړي ولې چې همدامتوارث دی اولمونځ دي هم خطيب وركړي له خطيب ماسوادبل چالپاره امامت كول مناسب نه دي .

ف:دجمعې په ورځ له زوال څخه وړاندي له ښار څخه وتل اوپه سفرتلل مكروه نه دی له سفرڅخه مرادشرعی سفرنه دی بلكه هرهغه ځای ته تلل مراددي چيرته چې دجمعې لمونځ فرض نه وي اوله زوال څخه وروسته

دجمعې دلمانځه له اداء کولوبغيرپه سفرتلل مکروه دي کمافي شرح التنوير:وقال في شرح المنية والصحيح انه يکره السفر بعدالزوال قبل ان يصليها ولايکره قبل الزوال (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۱/۶۰۸)

## باب صلاة العيدين

### دباب داخترونودلمانځه په بيان کې دی

دجمعې دلمانځه اواخترونوپه لمانځه کې مناسبت دادی چې دواړه په جمع عظيم سره په ورځ کې په جهری قرأة سره اداکيږي اوله خطبې څخه ماسواچې دجمعې دلمانځه لپاره کوم شرطونه وو هغه شرطونه داخترونودلمانځه لپاره هم دي اوپه چاچې دجمعې لمونځ فرض دی په هغه داخترلمونځ هم واجب دی .مگرځرنگه چې فرض اوکثيرالوقوع ده په دي وجه يې جمعه تراخترونه مخته ذکرکړه ،عيدله عودڅخه دی دراگرځيدلوپه معنی سره ځرنگه چې اخترهرکال له نويو خوشحاليوسره راگرځي په دي وجه ده ته عيدويل کيږي اوس په عرف کې هري خوشحالی ته دعيدلفظ استعماليږي کماقال الشاعر: عيدوعيدوعيدصرن مجتمعة وجه الحبيب ويوم العيدوالجمعة.

(۳۵۶)تجب صلاة العيدين على من تجب عليه الجمعة بشرائطها سوى الخطبة(۳۵۷)وندب في الفطر أن يطعم (۳۵۸)ويغتسل ويستاك ويتطيب ويلبس أحسن ثيابه (۳۵۹)ويؤدي صدقة الفطر ثم يتوجه الى المصلى (۳۶۰)غير مکبر (۳۶۱)ولا يتنفل قبلها

**ترجمه**:واجب دی داخترلمونځ پرهغه چاباندي چې پرهغه دجمعې لمونځ واجب وي دجمعې له شرائطوسره ماسواله خطبې څخه ،اومستحب ده په کوچنی اخترکې چې څه وخوري ،اوغسل وکړي اوخوشبوئي ولگوي اوپه تن کې خپلې غوره جامې ،اوصدقه فطراداءکړي ،بيامتوجه شي دعيدگاه لورته ،تکبيردي نه وايي ،اوله دي څخه مخکې دي نفل نه کوي .

**تشريح** :(۳۵۶)يعنی داخترلمونځ واجب دی ولی چې نبی کريم ﷺ داخترپرلمانځه بلاترکه مواظبت کړی دی اودنبی کريم ﷺ بلاترکه مواظبت کول دوجوب دليل دی ،اوهمداراز په ارشادباری تعالی ﴿فصل لربک وانحر﴾ (يعنی دخپل لپاره لمونځ اداء کړه اوقرباني وکړه )کې له صلوة څخه داخترلمونځ مراددی،داخترونولپاره هم دري ډوله شرطونه دي (۱)دجوازشرائط يعنی طهارت ،عورت پټول ، استقبال القبلة ،وغيره (۲)دوجوب شرائط يعنی ازادوالی ،مقيم والی، روغ والی ،نروالی ،بيناوالی ، اوپه تگ باندي قدرت لرل ،(۳)داداء شرطونه هغه دي کوم چې دجمعې لپاره وو يعنی ښاربه وي ،سلطان به وي وغيره البته په اخترونوکې خطبه ويل شرط نه دي په جمعه کې شرط دي ولی چې شرط شی له شي څخه مخکې وي اوپه اخترونوکې خطبه له لمانځه څخه وروسته ويل کيږي .

(۳۵۷)يعنی دکوچنې اختردورځې له مستحباتوڅخه يودادی چې عيدگاه ته له تلوڅخه وړاندي کوم خوږشی وخوري ﴿لان رسول الله ﷺ لايخرج يوم الفطرحتی يأکل وکان لايأکل يوم النحرحتی يصلی﴾(يعنی نبی کريم ﷺ به دکوچنې اخترپه ورځ له څخه خوړلووړاندي عيدگاه ته نه وتی اودلوی اخترپه ورځ به يې ترلمانځه وړاندي څه نه خوړل).

(۳۵۸) قوله ویغتسل ویستاک الخ ای وندب فی الفطر ان یغتسل ویستاک الخ ،یعنی دکوچنی اخترپه ورځ غسل کول،خوشبوئي لګول او مسواک وهل مستحب دي ولې چې دا دخلګو دیوځای کیدو ورځ ده لکه څرنګه چې دجمعې په ورځ ددیرو خلګو دراغونډیدو له کبله دااعمال مستحب دي ،مسواک خوله عامو لمونځونو څخه مخکې هم مستحب دی نو ښکاره خبره ده چې داخترپه ورځ به په درجه اولی سره دمسواک اهتمام مناسب وي ،اودکوچنی اخترپه ورځ داهم مستحب ده چې په خپلو جامو کې کومه جامه تر ټولو ښه وي هغه دي په تن کړي ولې چې نبی کریم ﷺ سره دسرو کرښو والا یمنی څادر وو کوم چې به نبی کریم ﷺ دجمعې اوعیدینو په ورځ په تن کاوو.

ف:دلته مصنف رحمه الله غسل ته مستحب ویلې دي او حال دا چې غسل سنت دی نو ددي وجه داده چې سنت په مستحبو مشتمل وي ،مصنف رحمه الله دمسواک په باره کې وویل چې دعید په ورځ مسواک وهل سنت دی هسې خو مسواک په ټولو لمونځونو کې لمانځه ته دولاړیدلو په وخت کې مستحب ده ،البته په اوداسه کې مسواک سنت مؤکد دی کمافی الشامية :المرادبالاستياک عندالقيام الى الصلوة فانه مستحب وكذاعندالاجتماع بالناس واماالسواک فی الوضوء فانه سنة مؤكدة ولاخصوصية للعيدفيه (ردالمحتار:۱/۶۱۲)

ف:داکوم چې رواج دی چې داخترونو په ورځ خلګ له لمانځه وروسته التزاما مصافحه او معانقه کوي دابدعت دی ولې چې په خیرالقرون کې دا عمل موجود نه وو هوکه دنورو وختونو په څیر په دي وخت کې نوی ملاقات وو نو بیا دمصافحه وکړي که نه نو نه دي کوي ،باقی بې له مصافحې یوبل ته په اختر دي مبارک شه ویلو کې څه حرج نشته کمافی الشامية :ونقل فی تبيين المحارم عن الملتقط انه تكره المصافحة بعداداء الصلوة بكل حال لان الصحابة ﷺ ماصافحوابعداداء الصلوة ولانهامن سنن الروافض اه ثم نقل عن ابن حجرعن الشافعية انهابدعة مكروهة لااصل لهافی الشرع وانه ينبه فاعلهااولا ويعزرثانياثم قال :وقال ابن الحاج من المالكية فی المدخل انهامن البدع وموضع المصافحة فی الشرع انماهو عندلقاء المسلم لاخيه لافی ادبارالصلوات فحيث وضعهاالشرع يضعهافينهی عن ذلک ويزجرفاعله لمااتی به من خلاف السنة (ردالمحتار:۵/۲۷)

اوعلامة الهند محمد عبدالحی لکهنوی رحمه الله له اوږده بحثه وروسته داسې محاکمه لیکې ،اقول انهم قداتفقواعلی ان هذه المصافحة ليس له اصل فی الشرع ثم اختلفوافی الكراهة والاباحة والامراذادار بين الكراهة والاباحة ينبغی الافتاء بالمنع لان دفع مضرة اولی من جلب المنفعة فكيف لايكون اولی من فعل امرمباح علی ان المصافحين فی زماننايظنونه امراحسنا ويشنعون علی مانعه تشنيعابليغاويصرون عليه اصراراوقدمر ان الاصرارعلی المندوب يبلغه الی حدالكراهة فكيف اصرارالبدعة التی لااصل لهافی الشرع وعلی هذافلاشک فی الكراهة وهذاهوغرض من افتی بالكراهة من ان الكراهة انمانقلهامن عبارات المتقدمين والمحققين فلايغرابهاروايات مثل صاحب مجمع البركات والسراج المنير ومطالب المؤمنين فان تساهل مصنفيهافی تحقيق الروايات امرمشهوروجمعهم كل رطب ويابس معلوم عندالجمهوروالعجب من صاحب خزانة الروايات حيث قال فيهافی عقدالالی قال ﷺ صافحوابعدصلوة الفجريكتب الله لكم بهاعشرحسنات وقال ﷺ صافحوابعدالعصرتوجروابالرحمة والغفران انتهی ،ولم يفطن ان هذين الحديثين وامثالهماموضوعات وضعهاالمصافحون فانالله واناالیه راجعون (السعاية:۲/۲۶۵)

البته په عیدینو کې دعید دي مبارک شه دویلو جواز علامه شامی رحمه الله په دالفاظو سره بیان کړی دی والمتعامل فی البلاد الشامية والمصرية عيدمبارک عليک ونحوه وقال يمكن ان يلحق بذالک فی المشروعية والاستحباب لمابينهمامن التلازم فان من قبلت طاعته فی زمان كان ذالک الزمان عليه مباركاعلی انه قدوردالدعاء بالبركة فی امورشتی فيؤخذمنه استحباب الدعاء بهاهناايضا(ردالمحتار:۱/۶۱۳)

(۳۵۹)عيدګاه ته له تلو څخه وړاندې دې صدقه فطر اداکړي ولې چې له حضرت ابن عمر ﷺ څخه مروي ده چې نبي كريم ﷺ موږته له عيدګاه ته ترتلو وړاندې دصدقه فطر اداء کولو امروکړ، او هم دا راز عيدګاه ته ترتګ وړاندې دصدقه فطرپه اداء کولو کې دفقير اعانت دی په دې ډول چې دفقير زړه دلمانځه لپاره فارغيږي ،قوله ثم يتوجه ،دان مقدرله کبله منصوب دی په مخکينيو مندوباتو باندې عطف دی يعنی اوس دې دعيدګاه لورته متوجه شي دعيدګاه طرف ته وتل مستحب دي که څه هم په جامع مسجد کې خلک ځايږي .

(۳۶۰)قوله غيرمكبراى حال كونه غيرمكبرفى الطريق ،يعنى دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددې په لاره کې تکبيرنه وايي يعنی په لوړاوازسره دې تکبيرنه وايي له مطلق تکبيرويلو څخه منع نشته ولې چې تکبيرخير موضوع ده په سوکه ويلو کې دهيچااختلاف نشته ،داخفاء دليل دادی چې تکبيرذکردی او په ذکرکې اصل اخفاء ده ﴿لقوله ﷺ خيرالذكرالخفى وخيرالرزق مايكفى﴾ (ښه ذکرخفی دی او ښه رزق بقدرکفايت دی )مګر دلوی اخترپه ورځوکې خلاف قياس په زوره دتکبيرپه ويلونص واردشوی دی او خلاف قياس ترخپل موردپورې خاص وي لهذاکوچني اخترپه لوی اخترقياسول صحيح نه دی ،دصاحبينوپه نزددې په کوچنی اخترکې هم په لوړاوازسره تکبيروايي ،صاحبين عيدالفطرپه عيدالضحی باندې قياسوي .

ف:دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی كمافى الهداية :ويكبرفى الطريق فى الضحى جهراوفى الفطرالمختارمن منعه انه لايجهروهوالماخوذبه امالوسرالمستحب كذافى الجوهرة (هنديه :۱/۱۵۰)وفى درالمحتار:وقدذكرالشيخ قاسم فى تصحيحه ان المعتمدقول الامام(ردالمحتار:۱/۶۱۴)

(۳۶۱)قوله ولامتنفل قبلهااى وحال كونه غيرمتنفل قبلها،يعنی داخترله لمانځه څخه مخکې دې نفل نه کوي نه په عيدګاه کې او نه له عيدګاه ماسوا ،لحديث ابن عباس رضي الله عنهما ان رسول الله ﷺ خَرَجَ فَصَلَّى بِهِم العيد لم يُصَلِّ قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا(يعنی نبي كريم ﷺ له کورڅخه باهرشواوخلکوته يې داخترلمونځ ورکړنبي كريم ﷺ نه داخترله لمانځه مخکې نفل اداء کړل او نه يې داخترله لمانځه څخه وروسته )سره له دې چې نبي كريم ﷺ په لمانځه حريص وو بيايې هم لمونځ نه کول دممانعت ښه ده ،البته داخترله لمانځه څخه وروسته په کورکې نوافل اداءکول صحيح دي .

ف:علامه شامی رحمه الله فرمايي چې دمذکورحکم دخواصولپاره دی عوامو که داخترله لمانځه مخکې په کورکې يا په مسجدکې يا داخترله لمانځه وروسته په مسجدکې نفل کول نودوئ دې نه منع کيږي همدا شان دې داخترله لمانځه څخه مخکې له تکبيرويلو څخه نه منع کيږي که يې په لوړاوازسره وايي او که په کښته اوازسره ،لکه چې فرمايي ،وهذاللخواص اماالعوام فلايمنعون من تكبيرولاتنفل اصلالقلة رغبتهم فى الخيرات (قوله اصلا)اى لاسراولاجهرافى التكبيرولاقبل الصلوة بمسجداوبيت اوبعدهابمسجدفى التنفل واستشهدله بمافى التجنيس عن الحلوانى ان كسالى العوام اذاصلواالفجرعندطلوع الشمس لايمنعون لانهم اذامنعواتركوهااصلاممع تجويزاهل الحديث لهاولى من تركهااصلا(ردالمحتار:۱/۶۱۴)

(۳۶۲)وَوَقْتُهَا من ارْتِفَاعِ الشَّمْسِ الى زَوَالِهَا (۳۶۳)وَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ مُثْنِيًا قَبْلَ الزَّوَائِدِ (۳۶۴)وَهِيَ ثَلَاثٌ في كل رَكْعَةٍ وَيَوَالِي بين الْقِرَاءَتَيْنِ وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ في الزَّوَائِدِ (۳۶۵)وَيَخْطُبُ بَعْدَهَا خُطْبَتَيْنِ يُعَلِّمُ فِيهِمَا أَحْكَامَ صَدَقَةِ الْفِطْرِ (۳۶۶)ولم تُقْضَ إنْ فَاتَتْ مع الْإِمَامِ (۳۶۷)وَتُؤَخَّرُ بِعُذْرٍ إلَى الْغَدِ فَقَطْ

**ترجمه**: او داختر دلمانځه وخت دلمر له ارتفاع ځخه بيا ترزوال پوري دی، او دوه ركعته دي اداء كوي په دي ډول چې ثناء دي تر تكبيراتو مخكې ووايې، او تكبيرات زوائد دري دي په هر ركعت كې او اتصال دي وكړي په دواړو قرأتو كې اورفع يدين دي وكړي په تكبيرات زوائدو كې، او دوه خطبې دي ووايي له لمانځه ځخه وروسته، ورزده دې يې په هغو كې دصدقه فطر احكام، او قضاء دي نه راوړي كه چيرته فوت شو سره له امامه، او مؤخر كيداى شي دعذر له كبله صرف ترصبا پوري

**تشريح**: (۳۶۲) يعني داختر دلمانځه وخت دلمر يو ه يا دوه نيزي له لوړيدو ځخه شروع كيږي ولی چې نبی كريم ﷺ داخترلمونځ په همدي وخت اداء كاوو، او دعيد دلمانځه وخت دلمر ترزوال پوري دی ولی چې يو ځل درمضان به نه ويشتم باندی مياشت ښكاره نه شوه اوپه صباورځ له زوال ځخه وروسته يو ځو خلكو دمياشتې دليدلو شاهدي وركړه نونبی كريم ﷺ په راتلونكې ورځ يعني دشوال په دوهمه داختر دلمانځه داداء كولو امروكړ نو كه له زوال ځخه وروسته داخترلمونځ جائز واى نونبی كريم ﷺ په دشوال تر دوهمي پوري نه مؤخر كاوو.

(۳۶۳) يعني امام دي له خلكو سره دوه ركعته لمونځ په دي ډول سره اداء كړي چې اول دي تكبير تحريمه ووايې بيا دي ثناء ووايې اودري زوائد تكبيرونه دي ووايې اوپه تكبيرات زوائدو كې دهر دوه تكبيرونو په منځ كې دريو تسبيحاتو په اندازه توقف كول مستحب دی بيا دي له الحمدلله سره يو سورة تلاوت كړي بيا دي ركوع تكبير وكړي او ركوع او سجده دي وكړي په دي ډول به اول ركعت پوره شي، په دوهم ركعت كې دي اول قرأة فاتحه او ضم سورة وكړي بيا دي دري زوائد تكبيرونه ووايې او دركوع په تكبير ويلو سره دي ركوع وكړي همدا تفصيل له حضرت عبدالله ابن مسعود ؓ ځخه منقول دی.

(۳۶۴) تكبيرات زوائد په هر ركعت كې دري دي په اول ركعت كې له قرأة ځخه مخكې او په دوهم ركعت كې له قرأة ځخه وروسته دي په دي ډول به ددواړو ركعتونو د قرأة ترمنځ اتصال وي ددواړو قرأتونو ترمنځ به تكبيرات زوائد فاصل نه وي، ددي تفصيل مطابق په دواړو ركعتونو كې ټول نه تكبيرونه شول شپږ زوائد دوه دركوع تكبيرونه او يو تكبير تحريمه، دا دحضرت عبدالله ابن مسعود ؓ قول دی، او همدا د احنافو مذهب دی، دامام مالك ؒ او امام شافعي ؒ په نزد په اول ركعت كې له تكبير تحريمه ماسوا او ۷ زائد تكبيرونه دي او په دوهم ركعت كې دركوع له تكبير ځخه ماسوا پنځه ۵ زوائد تكبيرونه دي دا دابن عباس ؓ مذهب دی، دتكبيرات زوائدو په وخت كې دي رفع يدين كوي ﴿لقوله ﷺ لاترفع الأيدي الافي سبع مواطن وذكر منها تكبيرات الأعياد﴾ (يعني لاسونه مه پورته كوئ مگر په اوه ۷ ځايونو كې او په دي اوو ۷ ځايونو كې يو ځاى دتكبيرات عيدينو دی).

**ف**: داختر په لمانځه كې كه يې امام په ركوع كې وموندنو تكبيرات دي ووايي او ركوع ته دي ولاړ شي البته كه له امام سره په ركوع كې دنه شريكيدلو خطره وه نو په ركوع كې دي بغير له لاس پورته كولو تكبيرات ووايي او كه له تكبيراتو پوره كولو ځخه وړاندي امام له ركوع ځخه سر او چت كړ نو بقيه تكبيرات ساقطيږي

،او که په دوهم رکعت کې له امام سره شریک شو یا په تشهد کې له امام سره شریک شو نو بقیه لمونځ بالکل په دې ډول اداء کیږي لکه له امام سره یو ځای چې اداء کیږي. (احسن الفتاوی :۴/۱۵۳)

(۳۶۵)داخترله لمانځه څخه چې فارغ شي نو امام دې دوه خطبې ولولې ،لحدیث ابن عمر رضی الله تعالی عنهما قال کان رسول الله ﷺ ثم ابوبکر ﷺ وعمر ﷺ یصلون العیدین قبل الخطبة (یعنی نبی کریم ﷺ بیا حضرت ابوبکر ﷺ بیا حضرت عمر ﷺ داخترونو لمونځ له خطبې څخه مخکې اداء کاوو )،په دې خطبه کې دې د صدقه فطر او دهغې داحکامو تعلیم ورکړل شي ترڅو که چا صدقه فطرنه وي اداء کړې هغه يې اداء کړي ولې چې خطبه د همدې مقصد لپاره مشروع شوې ده ،بیا مستحب داده چې داولنۍ خطبې په پیل کې دې مسلسل نه ۹ تکبیرونه ووایې اوددوهمې خطبې په پیل کې دې او۷تکبیرونه ووایې اوبالکل په اخیرکې مسلسل څوارلس واره الله اکبرویل مستحب دي .

(۳۶۶)یعنی که له چا څخه داخترلمونځ له امام سره فوت شو یعنی له امام سره یې اداء نه کړ نو هغه به قضاء نه اداء کوي ولې چې داخترد لمانځه لپاره څه داسي شرئط دي کوم چې په تنها انسان سره نشي پوره کیدای مثلاً جماعت ،دسلطان وجود وغیره نو څرنګه چې په منفرد کې دا شرطونه نشي موجودکیدای په دې وجه دده تنها داخترلمونځ اداء کول هم جائز نه دي ،هوکه چیرته بلې عیدګاه ته په تلوسره یې داخترلمونځ پیداکولی شوای نوهلته دې ولاړشي اوداخترلمونځ دې اداء کړي ولې چې داخترلمونځ په ښارکې له یوه څخه په ډیروځایونوکې اداء کول جائز دي .

ف:په ښارکې دننه په متعدد وځایونوکې په یوه وخت کې دجمعې او عیدینو لمونځ اداء کول صحیح دي په یوه ځای کې متعدد جماعتونه کول جائز نه دي لهذاله کوموخلکو څخه چې داخترلمونځ پاتې شو نوهغوئ که په کوم بل ځای کې دبل امام اقتداء وکړي یادبل جماعت اهتمام وکړي نو ددوئ داعمل صحیح دی البته په همدې مسجدیا عیدګاه کې دوهم ځل لمونځ اداء کول جائزنه دي (بحرالرئق:۲/۱۶۲)

(۳۶۷)یعنی داخترلمونځ دعذرله کبله تردوهمې ورځې پورې مؤخرکول جائز دي ولې چې ددې تاخیرپه سلسله کې نص وارد شوی دي چې یو ځل له زوال څخه وروسته څه خلکو دسپوږمۍ دلیدلو شاهدي اداء کړه نونبی کریم ﷺ په دوهمه ورځ داخترد لمانځه داداء کولو حکم وکړ،لیکن که دوهمه ورځ هم کوم داسې عذرپیداشو چې داخترلمانځه لره مانع وو نوپه دریمه ورځ به داخترد لمانځه داداء کولو اجازه نه وي ولې چې دعیدینو په لمونځونوکې هم دجمعې په ډول اصل خو داده چې باید قضاء یې او نشي مګرتردوهمې ورځې پورې په مؤخرکولوکې دحدیث مذکورله کبله دااصل ترک کړای شو لیکن څرنګه چې تردریمې ورځې پورې د مؤخرکولوپه باره کې کوم نص نشته په دې وجه تردریمې ورځې پورې دمؤخرکولو اجازه نشته .

(۳۶۸)وَهِيَ أَحْكَامُ الْأَضْحَى لٰكِنْ هُنَا يُؤَخِّرُ الْأَكْلَ عَنْهَا (۳۶۹)وَيُكَبِّرُ فِي الطَّرِيقِ جَهْرًا (۳۷۰)وَيُعَلِّمُ الْأُضْحِيَّةَ وَتَكْبِيرَ التَّشْرِيقِ فِي الْخُطْبَةِ (۳۷۱)وَتُؤَخَّرُ بِعُذْرٍ إِلَى ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَالتَّعْرِيفُ لَيْسَ بِشَيْءٍ

**ترجمه**: او همدا احکام دلوی اختر هم دي ليکن دلته دي مؤخرکې خوراک له لمانځه څخه، او په لاره کې دي په لوړ اواز سره تکبير وايي، او تعليم دي ورکړي داضحيه او تکبيرات التشريق داحکامو په خطبه کې، او مؤخرکيدای شي دعذر له کبله ترد ريمې ورځې پورې او تعريف هيڅ شی هم نه دی.

**تشريح**: (۳۶۸) قوله وهي احکام الاضحى اى الاحکام المذکورة فى صلوة عيد الفطر احکام لعيد الاضحى، يعنى کوم تفصيل چې دکوچنی اختر داحکامو په باره کې تير شو هغه تفصيل دلوی اختر داحکامو په باره کې هم دی البته دلوی اختر په ورځ دي خوراک له لمانځه څخه وروسته وکړي ولې چې مروی ده چې نبی کريم ﷺ به دلوی اختر په ورځ خوراک نه کاوو ترڅو چې به له لمانځه څخه فارغ شو بيا به يې له اضحيه خوراک تناول کاوو.

**ف**: داصح قول مطابق دلوی اختر په ورځ قربانی کونکې او قربانې نه کونکې دواړو له خوراک له لمانځه څخه مؤخرکول مستحب دي او که يې لمانځه څخه مخکې خوراک وکړ هم مکروه نه ده کمافى الدر المختار: ويندب تاخير اكله عنها وان لم يضح فى الاصح ولو اكل لم يكره اى تحريما قال فى البحر وهو مستحب ولا يلزم من ترک المستحب ثبوت الکراهة الا لابد لهامن دليل خاص (الدر المختار مع الشامية: ۱/۶۱۸)

(۳۶۹) بيا عيدگاه ته تلو په وخت کې به په لاره کې بالاتفاق په لوړ اواز سره تکبير وايي لقوله تعالى ﴿ اذکروا الله فى ايام معدودات ﴾ (يعنى يادکړئ الله تعالى لره دشمار په ورځوکې) دشميرله څوورځوڅخه مراد دعيد په ورځوکې تکبير ويل دي، او همدا راز مروی ده چې نبی کريم ﷺ به دعيدگاه په لاره کې دعيد په ورځ په لوړ اواز سره تکبير وايو.

(۳۷۰) دلوی اختر له لمانځه وروسته دي امام دوه خطبې ولولې ولې چې نبی کريم ﷺ همدا شان عمل کړی وو، او په دي دوو خطبوکې به خلګوته دقربانی او تکبيرات تشريق احکام ورښيي ولې چې په دي ورځوکې همدا شيان مشروع دي او خطبه دهمدي شيانو دتعليم لپاره مشروع شوي ده، هسې خو مناسب داده چې تکبيرات تشريق دي له اختر څخه په مخکنۍ جمعه کې ورازده کړي ولې چې تکبيرات تشريق داختر له خطبې څخه وړاندي يعنى دذوالحجې دنهمې ورځې له سهار څخه شروع کيږي لهذا داختر له خطبې څخه مخکې ددوئ تعليم مناسب دی.

(۳۷۱) يعنى که دلوی اختر په ورځ کوم عذر دلمانځه څخه مانع موجود شو نو بيا ددي دوهمه ورځ لمونځ اداء کړي او که په دوهمه ورځ هم عذر وو نو په دريمه ورځ دي اداء کړي مګر له دريمې ورځې څخه وروسته مؤخرکول جائز نه دي ولې چې دلوی اختر لمونځ مؤقت بوقت اضحيه (قربانی) دی په دي وجه به داضحيه په ايامو سره مقيدوي مګر په بلاعذر تر دوهمې يادريمې ورځې پورې په مؤخرکولو سره ګنهګار کيږي ولې چې له نبی کريم ﷺ او صحابه کرامو ﷺ څخه داشان تأخير منقول نه دی، او تعريف دعرفې لمانځلو په معنى سره دی، دکوم چې صورت دادی چې دعرفې په ورځ خلک په خپله علاقه کې په يو ميدان کې سره راجمع شي اولکه څرنګه چې حاجيان په عرفات کې دخير دعاء کوي داخلک هم ددوئ په شان احرام وتړي او په لبيک ويلو سره يو ځای شي او ودعاء وکړي مصنف ﷫ په دي باره کې وايي چې په شريعت کې ددي هيڅ ثبوت نشته ولې چې په شريعت کې دخاص ځای يعنى عرفات کې دريدل عبادت دی له دي ماسوا بل ځای دريدل عبادت نه دی.

(۳۷۲) وَسُنَّ بَعْدَ فَجْرِ عَرَفَةَ إِلَى ثَمَانٍ مَرَّةً اللهُ أَكْبَرُ إِلَى آخِرِهِ (۳۷۳) بِشَرْطِ إِقَامَةٍ وَمِصْرٍ وَمَكْتُوبَةٍ وَجَمَاعَةٍ مُسْتَحَبَّةٍ (۳۷۴) وَبِالِاقْتِدَاءِ يَجِبُ عَلَى الْمَرْأَةِ وَالْمُسَافِرِ

**ترجمه**: او سنت دی دعرفات دورځې له سهار څخه تراتو لمونځونو پورې يو ځل الله اكبر الخ ويل، په دې شرط چې مقيم به وي او ښار به وي او فرض لمونځ به وی او مستحب جماعت به وي، او داقتداء له امله واجبيږي په ښځه او مسافرباندې هم،

**تشريح**: (۳۷۲) داخترپه ورځوكې له فرض لمانځه څخه وروسته يو ځل تكبيرتشريق يعنى اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ سنت دي، دتكبيرتشريق ېيل په اتفاق داحنافو سره دنهم ذوالحجه له سهار څخه كيږي او په انتهاء كې اختلاف دی دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد د ذی الحجه دلسم تاريخ ترمازديگره پورې تكبيرتشريق ويل كيږي په دې دول دامام ابوحنيفه رحمه الله دمذهب مطابق ټول اته لمونځونه دي له كوم څخه چې وروسته تكبيرتشريق ويل كيږي، همدا دحضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه قول دی.

دصاحبينو په نزد دايام تشريق داخري ورځې يعنى ديارلسم ذوالحجه ترمازديگرپورې تكبير تشريق ويل كيږي په دې دول دصاحبينو دمذهب مطابق ټول درويشت لمونځونه دي چې له هغوئ وروسته تكبيرتشريق ويل كيږي.

**ف**: مصنف رحمه الله تكبيرتشريق سنت گڼلې دي مگر دلته سنت دواجب په معنى سره دي ولې چې تكبيرتشريق له فرض لمانځه وروسته يوځل ويل واجب دی كمافی شرح التنوير (ويجب تكبير التشريق) فى الاصح للامر به (مرة) وان زادعليها يكون فضلا، قال ابن عابدين (قوله للامر به) اى فى قوله تعالى ﴿وَاذْكُرُوا اللهَ فِي أَيَّامٍ مَعْدُودَاتٍ﴾.

**ف**: حضرت مولانامفتى رشيداحمدصاحب نورالله مرقده فرمايي: داخترله لمانځه څخه وروسته تكبيرتشريق بالاتفاق جائز دي البته په وجوب او استحباب كې اختلاف دی دوجوب قول راجح دی. (احسن الفتاوى: ۴/۱۴۵)

(۳۷۳) دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد تكبيرتشريق صرف دفرض لمنځونوله جماعت مستحبه څخه وروسته په مقيمو خلكو په ښاركې واجب دي ولې چې په لوړاواز سره تكبيرويل دسنت څخه خلاف دي البته په رواياتوكې له مذكوره شرائطو سره واردشوي دي لهذادې شرائطو رعايت به كيږي. او دصاحبينو په نزد پرهغه شخص باندې واجب دي كوم چې فرض لمونځ اداء كړي كه ښاري وي كه قروی كه مقيم وي كه مسافر، نركه ښځه ولې چې تكبيردفرض لمانځه تابع دي نوځوك چې هم فرض لمونځ اداء كړي هغه به تكبيروايي.

**ف**: له جماعت مستحبه څخه دنارينه وجماعت مراددی لهذا دښځوله جماعت څخه وروسته تكبيرات تشريق واجب نه دي ولې چې دښځوجماعت مستحب نه بلكه مكروه دی.

**ف**: په دواړه مسئلوكې دصاحبينو قول مفتى به دی ولې چې تكبيرويل عبادت دی او په عبادت كې احتياط په دې كې دی چې اكثرواخيستل شي كمافى شرح التنوير: (وقالا بوجوبه فور كل فرض مطلقا) ولو منفردا او مسافرا او امرأة لانه تبع للمكتوبة (الى) عصر اليوم الخامس (اخر ايام التشريق وعليه الاعتماد) والعمل والفتوى فى عامة الامصار وكافة الاعصار (الدرالمختار على

هامش ردالمحتار: ۱/۶۲۰)وفي امدادالاحكام :نعم نقل عن البحرعن المجتبي والجوهرة ان الفتوى على قولهمالى من يجب عليه ايضاًفالبحرروبالجملةالاحوط العمل بقولهماواللهاعلم(امدادالاحكام: ۱/۷۸۰)

(۳۷۴)دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپه ښځه اومسافرباندي تكبيرات تشريق واجب نه دي لامرالبته كه دوئ په ښاركې له مقيم امام سره په جماعت كې شريك شول نودامام داتباع له كبله به پردوئ هم تكبيرات تشريق واجب وي لكه څرنګه چې دمقيم په اقتداء كولوسره په مسافرباندي هم څلوررکعته لازميږي ،البته ښځه به په تكبيرپه لوړاوازسره نه وايي .

## باب الكسوف

داباب دكسوف دلمانځه په بيان كې دى

داخترپه لمانځه ،دكسوف په لمانځه اوداستسقاء په لمانځه كې مناسبت دادى چې دري واړه لمونځونه په ورځ كې بغيرله اذان اواقامت څخه اداء كيږي ،بياداخترلمونځ په دي وجه مقدم كړچې كثيرالوقوع دى اوكسوف يې هم پراستسقاء په همدي وجه مقدم كړ .

كسوف اوخسوف په لغة كې دنقصان په معنى دي اودفقهاوپه اصطلاح كې دلمرتندرنيولوته كسوف اودسپوږمى تندرنيولوته خسوف ويل كيږي ،په صلوة الكسوف كې اضافت له قبيلې داضافة الشئ الى سببه څخه دى ،صلوة كسوف په كتاب الله اوسنت رسول الله دواړوسره ثابت دى قال الله تعالى ﴿ومانرسل بالايات الاتخويفا﴾ ښكاره خبره ده چې كسوف هم دالله تعالى له ويرونكيونښانيو څخه يونښه ده ، اوپه بخارى شريف كې روايت دى نبى كريم ﷺ فرمايي ﴿إنّ الشَّمسَ وَالقَمَرَ آيَتَانِ من آيَاتِ اللهِ لاَيَنكَسِفَانِ لِمَوتِ أحدٍ ولا لحياته فإذا رأيتموها فاذكروا الله وَصَلّوا ﴾ (يعنى دلمرتندرنيول يادسپوږمى تندرنيول په خلګوكې دچادمرګ له كبله نه كيږي بلكه داد واړه دالله تعالى له نښانيو څخه دي نوكله چې تاسي داووينئ نولمونځ اداء كړئ).

(۳۷۵)يُصلّي ركعتين كالنفل (۳۷۶)إمامُ الجمعة(۳۷۷)بلاجهرٍ وخطبةٍ(۳۷۸)ثمّ يَدعو حتى تنجلي الشمس (۳۷۹)وَإلاّ صَلّوا فُرادى (۳۸۰)كالخسوف والظلمة والريح والفزع

**ترجمه**:وراداء دي كړي دوه ركعته دنفلوپه شان ،دجمعې امام ،بغيرله جهراوخطبې څخه بيادي دعاء وكړي ترڅوچې روښان شي لمر ،كه نه نو لمونځ دي اداء كړي هريوتنها ،لكه دسپوږمى دتندرپه وخت كې اوتوري تاريكى په وخت كې اودوارخطايې (ويري)په وخت كې

**تشريح** :(۳۷۵)يعنى كه لمرتندرونيوى نوامام دي خلګوته لږترلږه دوه ركعته دنفلوپه څيرواداء كړي يعنى له اذان اواقامت څخه بغيردي اداء كړي اوپه دواړوركعتونوكې دي ښه اوږدقرأة تلاوت كړي ولى چې نبى كريم ﷺ اول ركعت دسورة بقره په اندازه او دوهم ركعت دسورة ال عمران په اندازه اوږدكړى وو .

**ف**:داحنافوپه نزدبه په واړه ركعتونوكې يوه يوه ركوع كوي ولى چې له حضرت عبدالله بن عمروابن العاص څخه مروى ده چې نبى كريم ﷺ صلوة كسوف دوه ركعته راكړهرركعت له يوي ركوع سره ،دامام شافعى

رحمه الله په نزد به په هر رکعت کې دوه رکوع کوي ولې چې له حضرت عائشه رضي الله عنها څخه مروی ده چې نبی کریم ﷺ دوه رکعته صلوة کسوف اداء کړې په څلور رکوع او څلور وسجدو سره.

(۳۷۶) په صلوة کسوف کې له فتنې او فساد څخه د خلاصيدلو لپاره مستحب داده چې هغه څوک امام جوړ مقرر کړای شي کوم چې خلکو ته د عيدينو او جمعې لمونځ ورکوي كمافي الشامية: والصحيح ظاهر الرواية وهو انه لايقيمها الا الذى يصلى بالناس الجمعة كذافي البدائع (ردالمحتار: ۱/۶۲۲)

(۳۷۷) قوله بلاجهر وخطبة اى يصلى الامام ركعتين بلاجهر في القراة وبلاخطبة، يعنی د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد به قرأة اهسته وايې ولې چې دا د ظهر په شان دورځې لمونځ دی او جماعت د دوا ړو لپاره شرط نه دی لهذا د ما پښين په شان به دلته هم قرأة اهسته وايې، د صاحبينو په نزد به قرأة په لوړ اواز سره وايې ولې چې دا داختر د لمانځه په شان په جمع عظيم سره اداء کيږي نو داختر د لمانځه په شان به په دې کې هم قرأة په لوړ اواز سره وايې په صلوة کسوف د احنافو په اتفاق سره خطبه نشته ولې چې خطبه لوستل منقول نه دي.
كمافي الهندية: وليس في هذه الصلوة خطبة وهذا مذهبنا كذافي المحيط (هندية: ۱/۱۵۳)

ف: د قرأة په باره کې د امام ابو حنيفه رحمه الله قول مفتی به دی لمافي الهندية: ولايجهر بالقراة في صلوة الجماعة في كسوف الشمس في قول ابي حنيفه رحمه الله كذافي المحيط والصحيح قوله كذافي المضمرات (هندية: ۱/۱۵۳)

(۳۷۸) له لمانځه وروسته دې دعاء وکړي ترڅو چې لمر روښانه شي، او امام لره اختيار دی که يې خوښه شوه مخامخ دې قبلې ته کښيني او دعاء دې وکړي او که يې خوښه شوه نو د خلکو طرف ته دې متوجه شي او دعاء دې وکړي او خلک دې امين وايې ترڅو چې د لمر تندر ختم شي ولې چې نبی کریم ﷺ فرمايي ﴿ إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِن آيَاتِ اللهِ لَا يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ فَإِذَا رَأَيْتُمُوهَا فَادْعُوا اللهَ وَصَلُّوا حتى تَنجَلِيَ الشَّمس ﴾ (يعنی لمر او سپوږمۍ د الله تعالی له نښانيانو څخه دوه نښانياني دي د دوئ تندرنيول په خلکو کې د چا د مرګ يا ژوند له کبله نه وي نو کله چې تاسې دوئ ووينئ نو دعا وکړئ او لمونځ اداء کړئ ترڅو چې تندر ختم شي).

(۳۷۹) قوله والااى وان لم يحضر امام الجمعة الخ، يعنی که امام جمعه موجود نه وو نو خلک دې په خپلو خپلو کورونو کې تنها تنها لمونځ اداء کړي ولې چې يوه لره په امام جوړولو کې د اختلاف او فتنې خطره ده او همدا راز د انفل لمونځ دی او په نوافلو کې اصل انفراد دی.

(۳۸۰) قوله كالخسوف اى كما يصلى في الخسوف فرادى، يعنی د لمر د تندر د نيولو په وخت کې که امام جمعه نه وي نو خلک دې په جماعت سره لمونځ نه اداء کوي بلکه هر يو دې تنها لمونځ اداء کړي ولې چې د فتنې خطره ده لکه څرنګه چې د سپوږمۍ د تندرنيولو په وخت کې جماعت نشته ولې چې د نبی کریم ﷺ په زمانه کې سپوږمۍ څو څله تندرنيولې ده مګر دا نه دي منقول چې نبی کریم ﷺ دې خلک را جمع کړي وي او لمونځ دې اداء کړي وی، او همدا راز د سپوږمۍ تندرنيول په شپه کې وي او په شپه کې د خلکو په را جمع کيدلو کې مشقت وي لهذا هر يو دې خپل لمونځ تنها اداء کړي، همدا شان دې ډيرې تاريکۍ يا طوفان يا د داريه وخت مثلاً زلزله وغيره په موقع دې هم خلک هر يو تنها لمونځ اداء کړي ولې چې دا شيان هم له ډارونکو نښو څخه دي لهذا په دې مواقعو کې هم په کار ده چې خلک د الله تعالی طرف ته متوجه شي.

## بَابُ الاِسْتِسْقَاءِ

داباب داستسقاء دلمانځه په بیان کې دی

له کسوف سره دصلوة استسقاء مناسبت مخکې ذکرشو ،استسقاء په هغه ځای کې کیږي چیرته چې داوبوپراخې نه وي مثلاکوم دریاب ،چشمه وغیره نه وي له کوم ځخه چې خلک خپله اوبه وڅښي اوخپلوحیوانانوته اوبه وروڅښې نوکه دي شیانوکفایت کاوو نوداستسقاء لپاره دي نه راوځي ولې چې استسقاء دشدیدضرورت په وخت کې وي .

(۳۸۱)لَهُ صَلاةٌ لَا بِجَمَاعَةٍ وَدُعَاءٌ وَاسْتِغْفَارٌ (۳۸۲)لَا قَلْبُ رِدَاءٍ (۳۸۳)وَحُضُورُ ذِمِّيٍّ (۳۸۴)وَإِنَّمَا يَخْرُجُونَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ

**ترجمه**:داستسقاء لپاره لمونځ دی بې له جماعته اودعاء ده اواستغفاردی ،دڅادراړول نشته ،اودذمي دي نه حاضریږي،اوراوځي دي دري ورځې دلمانځه لپاره .

**تشریح**:(۳۸۱)داستسقاء لغوی معنی ده سیرابی غوښتل ،اودشرع په اصطلاح کې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزداستسقاء دقحط سالی په زمانه کې دعاء اواستغفارته ویل کیږي ،اوپه استسقاء کې په جماعت سره لمونځ اداءکول مسنون نه دي لقوله تعالی (فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا) (یعنی ما وویل له خپل رب ځخه دګناه بخښش وغواړئ بیشکه هغه بخښونکی دی په تاسې به راپریږدي اسمان مسلسل)وجه استدلال داده چې الله تعالی دباران ورول په استغفارپسې معلق کړی دی نه په لمانځه پسې ،همدارازمروی ده چې نبی کریم ﷺ خطبه لوستله یوکس راغی اودوچ کالی شکایت یې وکړنبی کریم ﷺ لاس اوچت کړل اویې فرمایل اللَّهُمَّ أَغِثْنَا اللَّهُمَّ أَغِثْنَا ،نوله دي روایت ځخه هم صرف دعاء ثابتیږي ،لیکن که خلګوتنهاتنهالمونځ اداءکړنوجائز ده کراهت نه لري كماقال ابن عابدين الشامي :والجماعة جائزة لامكروهة وهذاموافق لماذكرشيخ الاسلام من ان الخلاف في السنية لافي اصل المشروعية لم يقل ابوحنيفة رحمه الله بسنيتهاولايلزم منهاقوله بانهابدعة كمانقله عنه بعض المتعصبين بل هو قائل بالجواز(شامي:۶۲۳/۱)

دصاحبینوپه نزددامام خلګوته دوه رکعته لمونځ ورکول سنت دي ولې چې دحضرت عبدالله بن زیدبن عاصم روایت دی ان رسول الله ﷺ خرج بالناس يستسقي بهم فصلى بهم ركعتين وحول رداءه ورفع يديه فدعاواستسقى واستقبل القبلة (یعنی نبی کریم ﷺ له خلګوسره استسقاء ته ووتی بیایې هغوئ ته دوه رکعته لمونځ ورکړ اوخپل ځادریې سرچپه کړاودواړه لاسونه یې اوچت کړل اودعاء یې وکړه اواستسقاء یې وکړه اواستقبال قبله یې وکړه )اوپه دواړه رکعتوکې دي قرأة په لوړاوازسره ولولي په عیدینوقیاس کوي .

**ف**:نن صباعمل دصاحبینوپه قول دی ؛ كمافي الدرمع الشامية: وقالايفعل كالعيدبان يصلي بهم ركعتين يجهر فيهمابالقرأة بلااذان ولااقامة ثم يخطب بعدهماقائماعلى الارض معتمداعلى القوس اوسيف اوعصا(الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۶۲۳/۱)

**ف**:له لمانځه وروسته دي دامام ابویوسف رحمه الله په نزدیوه خطبه اودامام محمد رحمه الله په نزددوه خطبې ولولي ،دامام ابویوسف رحمه الله قول راجح دی ؛كماقال الشيخ عبدالحكيم الشاولكوتي الشهيدفي حاشية الهداية: والصحيح ان الخطبة سنة والراجح في كيفيتهاقول الامام ابويوسف رحمه الله (هامش هداية :۱۵۹/۱)دخطبې اکثره برخه بایدپه استغفارمشتمله وي .

(۳۸۲)قوله ولاقلب رداء اى لايقلب رداء ،يعنى دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزدپه استسقاء کښ قلب رداء نشته ولى چې استسقاء دعاده اوپه دعاء کښ قلب داء نشته لکه چې په نورودعاوو کښ قلب رداء نشته ، دامام محمد رحمه الله په نزددي امام قلب رداء وکړي لفعله ﷺ ،دڅادرداړولو طريقه داده چې که څادرڅلور کونجه وو نولوړه برخه دي کښته کړي اوکښته برخه دي لوړه کړي اوکه څادرمدوروو لکه جبه نوراسته طرف دي کيڼ لورته کړى اوکيڼ طرف دي راسته لورته کړي ،خلک دي خپل څادرونه نه اړوي ځکه چې دانه ده منقول چې نبى کريم ﷺ دي صحابه کرامو ﷺ ته ددي حکم کړى وي .

ف :دامام محمد رحمه الله قول مفتى به دى کمافى الشامية :واختار القدورى قول محمد لانه ﷺ فعل ذالک وعليه الفتوى واما القوم لايقلبون اردیتهم عند کافة العلماء(ردالمحتار:۱/۶۲۴)

(۳۸۳)قوله وحضورذمى اى ولافيه حضورذمى ،يعنى استسقاء ته دى ذميان نه حاضريږي ولى چې دمسلمانانوراوتل درحمت دنزول ددعاء لپاره دي اوپه ذميانوخولعنت اوري ،همداراز دالله تعالى ارشاددى ﴿ومادعاء الکافرين الافى ضلال﴾(نه ده دکفارودعاء مګرضائع).

(۳۸۴)مستحب داده چې خلک تردريوورځوپوري په پښوپه پريمنځل شويو جامو کښ په خشوع اوخضوع سره ووځي اوهره ورځ له وتلوڅخه مخکښ څه صدقه وکړي اودتوبې تجديددي وکړي اوله خپلوخانو سره دي سپين ږيري اوحيوانان بيايې .

ف :اوکه له استسقاء څخه وړاندي باران وشونوهم دشکراوزيات باران دطلبولولپاره وتل مستحب دي کمافى شرح التنوير :وان سقوا قبل خروجهم ندب ان يخرجوا شکرالله تعالى(الدرالمختار على هامش ردالمحتار:۱/۶۲۵)

## بَابُ صَلوةِ الْخَوفِ

### داباب دصلوة الخوف په بيان کښ دى

له ماقبل سره مناسبت دادى چې صلوة استسقاء نفل دى کوم چې په جماعت سره غيرمشروع دى مګرعارض قحط له کبله مشروع ګرځولى شى دى همداشان لمونځ له عمل کثيرسره غيرمشروع دى مګرعارض خوف له کبله له عمل کثيرسره مشروع ګرځولى شوى دى له دى کبله له استسقاء وروسته صلوة الخوف ذکرکړل شو ،اوپه صلوة الخوف کښ اضافة له قبيلې داضافة الشئ الى شرطه دى.

(۳۸۵)إذَا اشتَدَّ الخَوفُ من عَدُوٍّ او سَبُعٍ وَقَفَ الإمَامُ طَائِفَةً بإزَاءِ العَدُوِّ وَ صَلَّى بِطَائِفَةٍ رَكْعَةً لَو مُسَافِرًا وَ رَكْعَتَينِ لَو مُقِيمًا وَ مَضَتْ هذِهِ إلَى العَدُوِّ (۳۸۶)وَجَاءَتْ تِلْكَ وَصَلَّى بِهِمْ مَا بَقِيَ وَسَلَّمَ وَذَهَبُوا إلَيهِمْ وَجَاءَتْ الأُولَى وَ أَتَمُّوا بِلَا قِرَاءَةٍ وَسَلَّمُوا وَمَضَوا (۳۸۷)ثُمَّ الأُخرَى وَأَتَمُّوا بِقِرَاءَةٍ

**ترجمه** :که خوف شديد شوله دښمن څخه يا له ځناورڅخه نوودي دروي امام يوه ټولى ددښمن په مقابل کښ اودوهمې ټولى ته دي يورکعت لمونځ ورکړي اودوه رکعته که مقيم وو اوولاړه دي شي داټولى ددښمن لورته اوهغه بله ټولى دي راشي اوهغې ته دي مابقى لمونځ ورکړي اوسلام دي وګرځوي اودا ټولى دي ولاړه شي ددښمن لورته اواولنى ټولى دي راشي اوخپل لمونځ دي پوره کړي بغيرله قرآة څخه اوسلام دي وګرځوي اوولاړه دي شي بيادي دوهمه ټولى راشي اوخپل لمونځ دي پوره کړي له قرآة سره.

**تشریح** :ښه خو داده چې دد ښمن یا کوم ځناور ځخه دویرې په صورت کې امام یوه ټولۍ دد ښمن مقابلې ته ولیږدوې اودوهمې ټولۍ ته پوره لمونځ ورکړي اودا ددښمن مقابلې ته ولیږدوي اوامام وقت ددوهمې ټولۍ (کومه چې دد ښمن په مقابل کې وه )ځخه یو کس ته حکم وکړي چې هغه دي دوئ ته پوره لمونځ ورکړي .(کذافی الدر المختار علی هامش رد المحتار ،۱/۶۲۶)

(۳۸۵)لیکن که چیرته خلګوپه یوه امام پسې دلمانځه په اداء کولو اصرارکاوو په بل پسې دلمانځه اداء کولوته تیارنه وو نوبیاکه دفجریا جمعه یاسفر دوه رکعته لمونځ وو نوامام وقت دي خلک په دوه ټولیو کې تقسیم کړي یوه دي دد ښمن په مقابل کې ودروي ترڅو له دښمن ځخه کوم تکلیف پیښ نه شي اودوهمې ټولۍ ته دي یو رکعت لمونځ ورکړي او که ځلور رکعتي لمونځ وو او داخلک مقیم وو نودوه رکعته لمونځ دي ورکړي نو کله چې امام په اول صورت کې داول رکعت اوپه دوهم صورت کې ددوهم رکعت له سجدې ځخه سر را وچت کړي نو دا ټولۍ دي پیاده دد ښمن مقابلې ته ولاړه شي .

(۳۸۶)اوهغه ټولۍ چې دد ښمن په مقابل کې وه هغه دي راشي اوپه امام پسې دي ودریږي امام دي دوئ ته باقی مانده لمونځ ورکړي اوسلام دي وګرځوي ولې چې دامام لمونځ پوره شومګردا ټولۍ دي سلام نه ګرځوي بلکه دد ښمن مقابل ته دي ولاړه شي ،اونو اوله ټولۍ که یې خوښه شوه نو چیرته چې یې اول رکعت اداء کړی وو هغه ځای ته دي راشي اوخپل لمونځ دي پوره کړي او که یې خوښه شوه نوپه کوم ځای کې ده په هغه ځای کې دي هر یو خپل لمونځ پوره کړي ښه داده چې اولنی ځای ته راشي کمافی الشامیة:ومشی فی الکافی علی ان العود افضل (ردالمحتار:۱/۶۲۶)،اوددوئ دارکعت به بغیرله قرأة ځخه وي ولې چې داخلک په تحریمه کې له امام سره دشریکیدوله امله لاحق دي اوپه لاحق باندې قرأة نشته ، اوس ددې ټولۍ لمونځ پوره شولهذا سلام دي وګرځوي اودد ښمن مقابلې ته دي ولاړه شي .

(۳۸۷)قوله ثم الاخری ای ثم تجیئ الطائفة الاخری ،دوهمه ټولۍ چې چیرته یې خوښه وي که اول ځای ته راځي او که په کوم ځای کې چې ده هلته دي خپل یو یو رکعت لمونځ وکړي اوسلام دي وګرځوي ددوئ به په دې رکعت کې قرأة کوي ولې چې داخلک له امام سره په شروع کې شریک نه وو په دې وجه مسبوق دي اوپرمسبوق قرأة واجب دی ځکه به داخلک قرأة لولی ،دصلوة خوف په باره کې اصل دحضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه روایت دی چې نبی کریم ﷺ په پورته ذکرشوې طریقې سره صلوة خوف اداء کړی وو ،امام ابویوسف رحمه الله فرمایي چې صلوة خوف دنبی کریم ﷺ په زمانه کې مشروع وو اوس مشروع نه دی .

ف:دطرفینو په نزد صلوة خوف اوس هم مشروع دی اودوئ قول راجع دی کمافی الدر المختار:صلوة الخوف هی جائزة بعدنبی ﷺ عندهما ای عندابی حنیفة و محمد خلافا للثانی ولهما ان الصحابة اقاموها بعده ﷺ (الدر المختار مع الشامیة:۱/۶۲۵)

ف:شرط داده چې لمونځ کونکی به پښو ځي نو که سپور شو دده لمونځ باطلیږي ولې چې دعمل کثیرله امله لمونځ باطلیږي په پښو تلل هم که څه هم عمل کثیر دی مګر دضرورت له کبله ددې اجازت ورکړل شوی دی کمافی الشامیة: لان الرکوب عمل وهو کثیر وهو مما لا یحتاج الیه بخلاف المشی فانه امر لابد منه حتی یصطفوا ازاء العدو الخ......والواجب ان یذهبوا مشاة فلو رکبوا ابطلت لانه عمل کثیر (ردالمحتار:۱/۶۲۶)

ف: دمصنف رحمه الله له عبارت ان اشتد الخوف څخه په ظاهر دا معلوميږي چې دصلوة خوف لپاره اشتداد خوف شرط دی حال دا چې دعامة المشائخ په نزد اشتداد خوف شرط نه دی بلکه د دښمن حاضریدل شرط دي.

(۳۸۸)وَصَلّٰى فِي الْمَغْرِبِ بِالْأُولٰى رَكْعَتَيْنِ وَبِالثَّانِيَةِ رَكْعَةً(۳۸۹)وَمَنْ قَاتَلَ بَطَلَتْ صَلَاتُهُ(۳۹۰)فَإِنِ اشْتَدَّ الْخَوْفُ صَلَّوْا رُكْبَانًا فُرَادٰى بِالْإِيمَاءِ إِلٰى أَيِّ جِهَةٍ قَدَرُوا(۳۹۱)وَلَمْ تَجُزْ بِلَا حُضُورِ عَدُوٍّ

ترجمه: او ورد دي کړي په ماښام کې اولی ټولی ته دوه رکعته او دوهمې ټولی ته یو رکعت، او چا چې قتال وکړنو دهغه لمونځ باطلیږي، او که خوف ډیر شونو خلک دي دسورتیا په حالت کې تنها تنها په اشاره سره لمونځ وکړي په کوم لوري چې قادر وي، او صلوة خوف جائز نه دی د دښمن له حضور څخه بغیر.

تشریح: (۳۸۸)دماښام لمونځ دي په دي شان وکړي چې اولی ټولی ته دي دوه رکعته ورکړي او دوهمې ټولی ته دي یو رکعت ورکړي ولی چې دخوف په لمانځه کې به امام هري ټولی ته نیم نیم لمونځ ورکوي او دماښام دلمانځه نیمایي یو پوره رکعت او یو نصف رکعت دی، ښکاره خبره ده چې دیوه رکعت تنصیف نشي کیدای په دي وجه موږ وویل چې اولی ټولی ته به دسبقت له امله دوه رکعته ورکوي او دوهمې ټولی ته به یو رکعت لمونځ ورکوي.

(۳۸۹)یعنی دلمانځه په حال کې دي قتال (جنګ)نه کوي که چا دلمانځه په حالت کې قتال (جنګ)وکړنو دده لمونځ باطلیږي ولی چې دغزوه احزاب په موقع دنبی کریم ﷺ څلور لمونځونه قضاء شول کوم چې نبی کریم ﷺ وروسته قضا مراوړل نو که دلمانځه په حالت کې قتال جائز وای نو نبی کریم ﷺ به ددي لمونځونو په خپل وخت کې اداء کول نه پریښودل.

ف: دامام مالک رحمه الله په نزد دلمانځه په حال کې په قتال(جنګ) کولو سره لمونځ نه فاسدیږي لقوله تعالى (وليأخذوا حذرهم واسلحتهم)وجه استدلال داده چې په ایت شریف کې په لمانځه کې دتنه داسلحې دراخیستلو امر شوی دی او ښکاره خبره ده چې دلمانځه په حالت کې اسلحه راخیستل دقتال لپاره وي لهذا ثابته شوه چې دلمانځه په حالت کې قتال کول جائز دی احناف ځواب ورکوي چې دلمانځه په حالت کې داسلحې دځان سره ساتلو امر په دي وجه شوی دی چې د دښمن دحملی په صورت کې زر کار ځیني واخیستل شي دا مطلب نه دی چې دلمانځه په حالت کې دقتال وکړي.

(۳۹۰)که د دښمن خوف دومره اندازه شدید شو چې هغوئ مسلمانانو ته له سورلیو څخه دکښته کیدو او لمونځ اداء کولو موقع نه ورکوله نو په داسې صورت کې مسلمانانو ته په سورلیو دسپرتیا په حالت کې په اشاره سره درکوع او سجدي کولو تنها تنها لمونځ اداء کول جائز دي لقوله تعالى ﴿فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا﴾(یعنی که خوف وي نو لمونځ اداء کړئ په څمکه په درید وسره یا د سورلی په حالت کې)، که دقبلې لورته مخ ګرځول ممکن نه وو نو کوم لورته چې یې خوښه وي مخ دي وګرځوي ولی چې دنورارکانو په څیر د ضرورت له کبله استقبال کعبه هم ساقطیږي.

ف: مګر دا په هغه وخت کې ده چې سپور مجاهد مطلوب وي او پرده دخوف غلبه وي که مجاهد طالب وو یو څوک یې تعقیب کړی وو نو په دي وخت کې (دخوف دنیستی له کبله )دده لمونځ نه صحیح کیږي كما في الشامية(قوله صلوا ركبانا)اى ولو مع السير مطلوبين فالراكب لو طالبا لاتجوز صلوته لعدم الضرورة الخوف في حقه(رد المحتار: ۱/۶۲۶)

ف: په سورلی باندی دناستي قید په دي وجه دی چې دپیاده تګ په وخت کي لمونځ جائز نه دی ولی چې پیاده تګ عمل کثیر دی او دتنها اداء کولو قید په دي وجه لګول شوی دی چې په جماعت سره دلمانځه اداء کولو لپاره دمکان متحدوالی ضروري دی او ظاهره ده چې دسورلی په حالت کي دسپرو مکان متحد نه وي، که دوه یا له دوو څخه زیات کسان له امام سره په سورلی باندی سپاره وو نودوئ لره په جماعت سره لمونځ اداء کول صحیح دي ولی چې په دي صورت کي دامام او مقتدیانو مکان متحد دی کمافی الهندیة :ولایصلون بجماعة رکبانا الا ان یکون الامام والمقتدی علی دابة فیصح اقتداء المقتدی به. (هندیة: ١/١٥٦)

(٣٩١) قوله ولم تجز بلاحضور عدو ای لم تجز صلوة الخوف بلاحضور عدو، یعنی پورته ذکرشوی تفصیل په هغه وخت کي دی چې دشمن حاضروي که دشمن حاضرنه وو نوصلوة خوف جائزنه دی ولی چې ضرورت نشته حتی که یې له لري څخه څه ولیدل او په هغه یې ددښمن خیال وکړاو صلوة خوف یې اداء کړ مګر وروسته معلومه شوه چې هغه دښمن نه وو نو ددي لمانځه اعاده به کوي.

# باب الجنائز

## داباب دجنازي په بیان کي دی

جنائز دجنازة جمع ده او جنازة دجیم په فتح سره مړی ته ویل کیږي او دجیم په کسره سره هغي تختې ته ویل کیږي په کوم چې مړده ایښودل کیږي، په باب الجنائز کي اضافة له قبیلې داضافة الشئ الی سببه څخه دی.

له ماقبل سره مناسبت دادی چې مصنف صاحب رحمه الله دژوندانه دلمانځه له بیان څخه فارغ شونو دمرګ دلمانځه بیان یې شروع کړ، خاص له صلوة خوف سره یې مناسبت دادی چې قتال کله کله مرګ ته مفضی کیږي په دي وجه مصنف رحمه الله له صلوة خوف وروسته دجنازي دلمانځه بیان ذکر کړ.

(٣٩٢) وَلِّیَ الْمُحْتَضَرُ الْقِبْلَةَ عَلٰی یَمِیْنِهٖ (٣٩٣) وَلُقِّنَ الشَّهَادَةَ (٣٩٤) فَاِنْ مَاتَ شُدَّ لَحْیَاهُ وَغُمِّضَ عَیْنَاهُ (٣٩٥) وَوُضِعَ عَلٰی سَرِیْرٍ مُجَمَّرٍ وِتْرًا وَسُتِرَ عَوْرَتُهٗ وَجُرِّدَ وَوُضِّیَ بِلَا مَضْمَضَةٍ وَاسْتِنْشَاقٍ (٣٩٦) وَصُبَّ عَلَیْهِ مَاءٌ مُغْلٰی بِسِدْرٍ اَوْ حُرُضٍ وَاِلَّا فَالْقَرَاحُ

**توجمه**: متوجه دي کړای شي هغه څوک چې مرګ ته نژدي شي دقبلې طرف ته په راسته اړخ، او تلقین دي وشي دشهادت، نو که مړشونو دي تړل شي ددزني او بندي دکړای شي دده سترګي، او په داسي تخته دي کینښودل شي په کومې چې په طاقو وارو سره خوشبویي لګول شوي وی، او پټ دي کړای شي دده فرض او جامې دی تري وایستل شي او اودس دي وروکړای شي له مضمې او استنشاق څخه بغیر، او پرده دي داسې اوبه توئ کړای شي کوموته چې دبیري له پاڼو سره یاله زمیو سره جوش ورکړل شوی وي، که نه نو خالصې اوبه.

**تشریح**: (٣٩٢) یعنی کله چې انسان مرګ ته نژدي شي نو دی دي په راسته اړخ دقبلې لورته څملول شي ولی چې دمړده په قبر کي دایښودلو هم دا کیفیت مسنون دی لهذا پردي په قیاسولو سره قریب المرګ هم باید په هدي کیفیت سره کښېښودل شي دځینو په نزد ستونې ستغ څملول مختار دي ولی چې دادروح دوتلو لپاره

ډېر اسان هيئت دی ،مګر دا په دې وجه مشکل ده چې دا خو په نقل سره معلوميږي چې په دې صورت کې روح په اسانۍ سره وځي ،هو دا ويل صحيح دي چې په دې صورت کې د مړه ستر ګې ورپټول اسان دي.

ف :مګر اول کيفيت مسنون دی کما في الشامية: وتعقبه في الفتح وغيره بانه لايعرف الا نقلا والله اعلم بالأيسر منهما ولكنه ايسر لتغميضه وشدلحيه (ردالمحتار:۶۲۷/۱)قريب المرګ ته محتضر په دې وجه ويل کيږي چې ده ته مرګ ياملک الموت حاضريږي.

(۳۹۳)قريب المرګ کس ته دې له غرغرې څخه وړاندې د شهادت تلقين وکړي يعنی ده ته نږدې دې په لوړ اواز سره کلمه شهادة ووايي﴿لقوله ﷺ لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ شَهَادَةَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ﴾(يعنی تاسې خپلو مړو ته د کلمه شهادت تلقين وکړئ ) له موتی څخه مراد قريب المرګ دی مګر مړه کيدونکی ته دې د کلمې د ويلو حکم نه کوي ولی چې دا د سختۍ حالت دی هسې نه چې انکار وکړي ،او له يو ځل کلمې لوستلو څخه وروسته دې دوهم ځل تلقين نه کوي که په منځ کې هغه کومه خبره وکړه نو دوهم ځل دې تلقين وکړي ترڅو کلمه شهادة د هغه اخري خبره شي کما في الهندية: فاذا قالها مرة لايعيدها عليه الملقن الا ان يتكلم بكلام غيرها وهذا التلقين مستحب بالاجماع.(هندية:۱۵۷/۱)

ف :يو تلقين له دفن کولو څخه وروسته هم مشروع دی د کوم طريقه چې داده چې له دفن څخه وروسته دې ووايي يافلان ابن فلان اذكر دينك الذي كنت عليه من شهادة ان لااله الا الله وان محمدا رسول الله وان الجنة حق والنار حق وان البعث حق وان الساعة آتية لاريب فيها وان الله يبعث من في القبور وانك رضيت بالله ربا وبالاسلام دينا وبمحمد نبيا وبالقران اماما وبالكعبة قبلة وبالمؤمنين اخوانا.(ردالمحتار:۶۲۹/۱)

(۳۹۴)له مرګ وروسته دې د مړه ژنې په جامه يا بل شي سره وتړي او دده دواړه ستر ګې او خوله دې وربنده کړي ولی چې همدا طريقه له سلفو څخه منقوله ده او په دې کې د مړه تحسين هم دی او د ستر ګو د پټول په وخت کې دې دا دعاء ولولي بِسْمِ اللهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُولِ اللهِ اللّٰهُمَّ يَسِّرْ عَلَيْهِ أَمْرَهُ وَسَهِّلْ عَلَيْهِ مَا بَعْدَهُ وَأَسْعِدْهُ بِلِقَائِكَ وَاجْعَلْ مَا خَرَجَ إِلَيْهِ خَيْرًا مِمَّا خَرَجَ عَنْهُ.

ف :له مرګ څخه وروسته د مړه قريبانو ته د مرګ خبرورکول جائز دي ترڅو د جنازې په لمانځه کې ډېر خلک شرکت وکړي او که مړه کوم عالم ،زاهد يا متبرک کس وو نو په ښهر کې دده د مرګ اعلان کول مستحسن دي کما في شرح التنوير: ويعلم به جيرانه وأقرباؤه قال ابن عابدين (قوله ويعلم به جيرانه وأقرباؤه) قال في النهاية فان كان عالما او زاهدا او ممن نتبرك به فقد استحسن بعض المتأخرين النداء في الاسواق لجنازته وهو الاصح (الدر المختار على هامش ردالمحتار:۶۳۰/۱)

(۳۹۵)يعنی کله چې مړه ته د غسل ورکولو اراده وکړي نو مړه دې په کومه تخته باندې څملوي او په تخته دې په دې وجه څملوی ترڅو اوبه له مړه څخه توی شي ،بيا دې د مړه تختې ته په طاقو وارو سره خوشبوئي ورکړل شي ولی چې په دې کې د مړه تعظيم دی ،او طاق وارې په دې وجه چې نبی کريم ﷺ فرمايلي دي﴿إِنَّ اللهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ﴾(يعنی الله تعالی وتردی او وترخوښوی )،بيا دې دده په واجب الستر اندامو باندې جامه واچول شي ولی چې سترعورت فرض دی او د مړه جامې دې وايستلې شي ترڅو چې د د تطهير ممکن شي ،بيا دې مړه ته اودس ورکړي بې له خولې او پوزې پريمنځلو څخه ولی چې د مړه په خوله او پوزه کې اوبه اچول او بيا را ايستل متعذر دي.

ف: يو قول دادی چې په لانده ټوکرسره دي مضمضه او استنشاق وروکړي يعنې لوند ټوکر دي په غاښو او پوزه کې ورتير کړي نو ښه خبره ده. (احسن الفتاوی: ۴/۲۴۸)

(۳۹۶) بيا دي له اودس ورکولو څخه وروسته د ژوند په حال په قياس کولو سره د مړده په بدن باندي اوبه توی کړي، او په کوم اوبو سره چې مړده ته غسل ورکول کيږي په هغو کې دي ديري پاڼي يا اشنان (يو قسم وابنه دي کوم چې په لاس پريمنځلو کې استعماليږي) واچوي او جوش دي کړي او که دا شيان موجود نه وو نو په په خالصو اوبو سره دي غسل ورکړي او که ممکنه وه ګرمي دي کړي ولی چې دا په پاکی کي ابلغ دي.

(۳۹۷) وَغُسِلَ رَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ بِالْخِطْمِيِّ (۳۹۸) وَأُضْجِعَ عَلَى يَسَارِهِ فَيُغْسَلُ حَتَّى يَصِلَ الْمَاءُ إِلَى مَا يَلِي التَّخْتَ مِنْهُ ثُمَّ عَلَى يَمِينِهِ كَذَلِكَ (۳۹۹) ثُمَّ أُجْلِسَ مُسْنَدًا إِلَيْهِ وَمُسِحَ بَطْنُهُ رَفِيقًا وَمَا خَرَجَ مِنْهُ غَسَلَهُ وَلَمْ يُعِدْ غُسْلَهُ وَنُشِّفَ بِثَوْبٍ

**ترجمه**: او و دي پريمنځل شي د مړده سر او ږيره په ګل خطمي سره، او په راسته اړخ دي څملول شي او و دي پريمنځل شي ترڅو چې او به هغه برخې ته ورسيږي کومه چې له تختې سره نښتې ده او بيا دي په کيڼ اړخ په همدي شان سره څملول شي او و دي پريمنځل شي، بيا دي کښينوي تکيه دي ورکړي او و دي مښل شي د ده نس اهسته اهسته او څه چې راووځي له ده څخه او غسل دي نه راګرځوي او وچ دي کړي په ټوکر سره.

**تشريح**: (۳۹۷) قوله وغسل راسه ولحيته بالخطمی ای وغسل راس الميت ولحيته بالخطمی، يعنې د مړده سر او ږيره دي په ګل خطمي (يو قسم خوشبو لرونکی عراقی وابنه دي کوم چې د صابن کار کوي) سره وروپريمنځل شي ولی چې دا خيري لري کوي که ګل خطمي نه وو نو صابن وغيره دي استعمال کړي.

(۳۹۸) له دي ټولو کارو څخه له فراغت وروسته دي مړده په راسته اړخ باندي څملوي او و دي مينځي او دومره اوبه دي پري توی کړي چې لاندنی برخې ته کومه چې له تختې سره نښتې ده او به ورسيږي بيا دي په کيڼ اړخ څملول شي او همدا عمل دي و کړي دا ترتيب په دي وجه دی ترڅو غسل له راسته اړخ څخه شروع شي.

(۳۹۹) بيا دي غسل ورکونکی مړده ته تکيه ورکړي او لږ دي را پورته کړي او په نرمه طريقه سره دي دمړي په نس لاس تير کړي ترڅو چې د مړده په نس کې که کوم څه وو چې هغه راووځي وروسته کفن خراب نه کړي، له نس مښلو څخه وروسته که کوم څه راووتل نو هغه دي د نجاست دازالي لپاره و مينځي مګر دا او داسه او غسل دا عادي ضرورت نشته ولی چې خروج نجاست د مړده په حق کې ناقض نه دی او مامور به غسل په يوځل ورکولو سره حاصل شو، له غسل څخه وروسته دي د مړده بدن په پاکه جامه سره وچ کړي ترڅو کفن لوند نه شي او له دي وروسته دي مړده ته کفن ورکړي.

ف: که څوک معذور وو له کوم څخه نجاست بهيدو نو پرده په همدي حالت کې د جنازي لمونځ اداء کول صحيح دي كما فی الشامية: اذا تنجس الكفن بنجاسة الميت لا يضر دفعا للحرج بخلاف الكفن المتنجس ابتداء اه و كذا لو تنجس بدنه بما خرج منه ان كان قبل ان يكفن غسل وبعده لا (ردالمحتار: ۱/۶۳۰)

(۴۰۰) وَجُعِلَ الْحَنُوطُ عَلَى رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ وَالْكَافُورُ عَلَى مَسَاجِدِهِ (۴۰۱) وَلَا يُسَرَّحُ شَعْرُهُ وَلِحْيَتُهُ وَلَا يُقَصُّ ظُفُرُهُ وَشَعْرُهُ (۴۰۲) وَكَفَنُهُ سُنَّةً إِزَارٌ وَقَمِيصٌ وَلِفَافَةٌ (۴۰۳) وَكِفَايَةً إِزَارٌ وَلِفَافَةٌ (۴۰۴) وَضَرُورَةً مَا يُوجَدُ (۴۰۵) وَلُفَّ مِنْ يَسَارِهِ ثُمَّ مِنْ يَمِينِهِ وَعُقِدَ إِنْ خِيفَ انْتِشَارُهُ

**ترجمه**:اوخوشبودي ولګوي دده پرسراوږيره باندي اودسجدي په اندامونودي كافورورولګوي ،اونه دي ږمنځوي دده وېښتان اوږيره اونه دي پري كوي دده نوكان اووېښتان ،اودنارينه مسنون كفن ازار،قميص اولفافه دی،اوكفايي كفن ازاراولفافه دی ،اوضروري كفن هغه دي چي ميسرشي ،اوراوابه يې ږوي له كېن طرف نه بيا له ښي طرف نه ،اوغوټه دي وركړي كه دكفن دخلاصيدلوخوف وو.

**تشريح**:(۴۰۰)دمرده پرسراوږيره دي حنوط ورولګوي(حنوط له څوخوشبوئي لرونكوشيانوڅخه دجوړوشويو عطرونوم دی) مراددا چي هرقسم خوشبووي البته زعفران اوورس دي پر نارينه باندي نه وهي لكه څرنګه چي په ژوندكي دنارينه و لپاره داممنوع دي ،كوم اندامونه چي په سجده كي په ځمكه لګېږي پرهغودي كافورولګوي ولی چي مرده ته خوشبوئي ورلګول سنت دي اودسجدي اندامونه ددېرعزت لائق دي اوكافوله چينجيانوڅخه دساتني ذريعه هم دي.

(۴۰۱)يعنی دمرده سراوږيره دي نه ورږمنځوي ولی چي له حضرت عائشه ﷺ څخه په دي باره كي پوښتنه وشوه نوهغي ﷺ وفرمايل ، عَلَامَ تَنْصُونَ مَيِّتَكُمْ (تاسي ولی خپل مرده دوېښتانوپه نيولوسره كشوئ )ګوياحضرت عائشه ﷺ دمرده دوېښتانوپه ږمنځولودناراضی اظهاروكړيه دي وجه يي دوېښتانوږمنځول په سركشولوسره تعبيركړل ،اوهمداراز وېښتان دښائست لپاره ږمنځېږي اومرده له زينت څخه مستغني شوی دی ،همداشان دي دمرده نوكان اووېښتان نه پري كوي ولی چي دابه هم دمرده دجزيئت له كبله شخول كېږي لهذادجلاكولو يي څه معنی نشته .

(۴۰۲)يعنی كفن په دري قسمه دی (۱)كفن مسنون :كفن مسنون دنارينوپه حق كي دري جامي دي (۱)ازاريعني لنګ مګرله سرڅخه ترپښوپوري مراددی(۲)قميص :مګربغيرله جيب،لستونو اوګريوان څخه،له غاړي څخه ترپښوپوري، (۳)لفافه :كومه چي له سرڅخه ترپښوپوري ترتولوبالا پري پيچل كېږي ،دنارينه لپاره دمذكوره دريوجاموپه سنت والی دليل دادی چي نبی كريم ﷺ ته دسحوليه (په يمن كي ديوځای نوم دی )ددريوسپينوجاموكفن وركړل شوی وو .

(۴۰۳)قوله وكفاية ازارولفافة ای من كفنه من حيث كفاية ازارولفافة ،يعنی دنارينولپاره كفن كفايه دوه جامي دي ازار،لفافه ،په كفن كفايه باندي دليل دحضرت ابوبكرصديق ﷺ قول دی كوم چي يي په مرض الموت كي فرمايلی وو چي زمادادوه جامي ومينځئ اوماته په همدوئ كي كفن راكړی ،همداراز دژوندی ادنی لباس دوه جامي وي نوله مرګ څخه وروسته هم په دوو جامواكتفاء كول جائز دي .

(۴۰۴)قوله وضرورة مايوجدای وكفنه من حيث ضرورة مايوجد ،يعنی كفن ضرورت دنارينه په حق كي هغه دی كوم چي ميسروي ولی چي داحدپه ورځ چي كله حضرت مصعب ابن عمير ﷺ شهيدشونوده ﷺ ته يي يوه جامه كفن وركړ.

(۴۰۵)پرنارينه دكفن خپرولوطريقه داده چي اول دي لفافه خپره كړي پرهغې برسېره دي ازارخپوركړي اومرده ته دی قيمص ورواغوستل شي اوپه ازاردی څملول شي بيادي دازاركېن اړخ

پرواړوي بيادي بنى اړخ ترڅوچې ښى طرف لوړشي همداشان دي لفافه دي پري واړوي ،که دکفن دخلاصيدلو خطره وه نو لفافه دی دسرا وپښو دواړو لورته وتړي ترڅو کفن خلاص نه شي.

ف: کفن دي نه له ډيراعلى تو کرڅخه وي اونه دي له ډيرکمزوري توکرڅخه وي ،بنه داده چې سپين توکروي (لقوله ﷺ احب الثياب الى الله البيض فليلبسها احياكم و كفنوا فيها موتاكم) (يعنى سپينې جامې دالله تعالى خوښې دي نوستاسې ژوندي دي په تن کوي او خپلو مردوته له دي څخه کفن ورکوئ).

ف: يوچاوصيت وکړچې ماته صرف په دووجامو کې کفن راکړئ يامالـه فلانکى سره په قبرکې ښخ کړئ نو دده دوصيت لحاظ به نه کيږي ولى چې دده داوصيت له سنت څخه مخالف دی .اوکه يې داوصيت وکړچې زماجنازه دي فلانکى کس اداء کړي (په داسې حال کې چې دجنازي اداء کونکى بل حقدار موجودوي )نوداوصيت باطل دی ولى چې په دي کې دصاحب حق لپاره وحشت دی كمافي الشامية: (قوله والفتوى على بطلان الوصية) عزاه في الهندية الى المضمرات اى لو اوصى بان يصلى عليه غير من له حق التقدم او بان يغسله فلان لايلزم تنفيذ وصيته ولا يبطل حق الولى بذالك وكذا تبطل لو اوصى بان يكفن في ثوب كذا (ردالمحتار: ١/٦٥٠)

(٤٠٦) وَكَفَنُهَا سُنَّةً دِرْعٌ وَإِزَارٌ وَخِمَارٌ وَلِفَافَةٌ وَخِرْقَةٌ تُرْبَطُ بِهَا ثَدْيَاهَا (٤٠٧) وَكِفَايَةً إِزَارٌ وَلِفَافَةٌ وَخِمَارٌ (٤٠٨) وَتَلْبَسُ الدِّرْعَ أَوَّلًا ثُمَّ يُجْعَلُ شَعْرُهَا ضَفِيرَتَيْنِ عَلَى صَدْرِهَا فَوْقَ الدِّرْعِ ثُمَّ الْخِمَارُ فَوْقَهُ تَحْتَ اللِّفَافَةِ (٤٠٩) وَتُجَمَّرُ الْأَكْفَانُ أَوَّلًا وِتْرًا

**ترجمه**: او دښځې مسنون کفن قميص ،څادر ،پړونى ،لفافه اويوټوټه ده په کومې چې دهغې سينه تړل کيږي ،اوکفن کفايه ازار ،لفافه اوپړونى دي ،اووروادي غوستل شي اول قميص بيادي له ويښتانو څخه دوه کوڅې جوړي کړي اوپه سينه دي ايله کړي ترقميص بالااوبيادي پړونى پري بالاکړي ترلفافې لاندي ،اوخوشبويه دي کړي کفنونه مخکې په طاقو واروسره.

**تشريح**: (٤٠٦) دښځې په حق کې سنت کفن پنځه جامې دي ازار ،قميص ،پړونى ،لفافه او خرقه يعنى سينه بندپه کوم چې دښځې سينه تړل کيږي ،دليل دحضرت ام عطيه رضي الله عنها حديث دی چې کله دنبى كريم ﷺ لورحضرت زينب رضي الله عنها وفات شوه نو کوموښځوچې هغې ته غسل ورکړنبى كريم ﷺ هغوئ ته داپنځه جامې ورکړي وي.

(٤٠٧) قوله وكفاية ازار ولفافة وخمار اى كفنها من حيث كفاية ازار ولفافة وخمار .يعنى کفن کفايه دښځې په حق کې دري جامې دي ازار ،لفافه اوپړونى ولى چې دادجامو هغه کم مقداردی چې ښځه يې په خپل ژوندانه کې په تن کوي اوپه کومو کې چې بلاکراهته لمونځ جائزدی له دريو څخه کمې جامې کفن ضرورت دی کوم چې بلاضرورته مکروه دی.

(٤٠٨) ښځې ته دکفن دورکولو طريقه داده چې اول دي قميص ورواغوستل شي بيادي ويښتان دوه چوټي ورجوړکړي اوپه سينه دي ورکښيږدي بيادي په دي برسيره پړونى اوبياله لفافې لاندي دي ازارورواغوستل شي .اوسينه بندبايدله لفافې څخه لاندې اوپرازار برسيره وی سينه بندله سينې څخه ترنامه پوري وي مگربنه داده چې ترورنوپوري وي كمافي الشامية :والاولى ان تكون من الثديين الى الفخذين (ردالمحتار: ١/٦٣٧) كذافي الهنديه: ١/١٦٩)

ف: امام شافعي رحمه الله فرمايي چې دښځې ويښتان دي په دريوبرخوتقسيم کړي يوه حصه دي دښالورته واچوي ولې چې مروی ده چې حضرت ام عطيه درقيه بنت رسول الله ﷺ ويښتان په دريوبرخوويشلي وو، احناف ځواب ورکوي چې داد حضرت ام عطيه فعل دی په حديث شريف کې ددي ذکرنشته، اونه نبي کريم ﷺ دي ته داتعليم ورکړی وو، اوويښتان دښالورته اړول دزينت لپاره وي اوحال داچې مړه له زينت څخه مستغني شوی دی.

ف: دکفن په باب کې خنثی مشکل دښځې په حکم کې دی يعنی دښځې په شان به احتياطاخنثی مشکل (يعنی نرښځی)ته هم په پنځوجاموکې کفن ورکوي ولې چې دنارينه والی په احتمال له دريوڅخه دزياتوجاموکفن ورکول مضرنه دي کمافي الشامية: (قوله وخنثی مشکل کامرأة فيه) ای فيکفن في خمسة اثواب احتياطالانه على احتمال کونه ذکرافالزيادة لاتضر (ردالمحتار: ۱/۶۳۸)

(۴۰۹) قوله وتجمر الاکفان اولاوترای تعطرالاکفان قبل ان يدرج الميت فيهاوترا. يعنی مړده په کفن کې له داخلولوڅخه وړاندي په کفنونو په طاق واروسره خوشبوئي لګول مسنون دي ولې چې نبی کريم ﷺ دخپلې لور په کفنونو دطاق وار خوشبوئي لګولوامرکړی وو له دي څخه وروسته دي په مړده باندي لمونځ اداء کړي.

ف: مړده لره په دريوموقعوکې خوشبوئي ورلګول مندوب دي کله چې روح ووځي، کله چې غسل ورکړي، اوکله چې کفن ورکړل شي، کمافی اللباب: فالمواضع التی يندب فيها التجمير ثلاثة عندخروج روحه عندغسله وعندتکفينه (اللباب في شرح الکتاب على هامش الجوهرة: ۱/۱۳۶)

## فصل

دافصل دصلوة على الميت په بيان کې دی صلوة على الميت دنبی کريم ﷺ له ارشاد صلوا على کل بروفاجر (لمونځ وکړئ په هرنيک اوفاجر) څخه ثابت دی ولې چې صلوا دامرصيغه ده او امردوجوب لپاره دی، اوهمداراز دنبی کريم ﷺ ارشاددی چې دمسلمان پرمسلمان شپږحقوق دي له دي شپږوڅخه يوداچې دمسلمان دجنازي لمونځ اداء کړي، همداراز دجنازي په فرضيت دامت اجماع ده، البته دجنازي لمونځ فرض عين نه بلکه فرض کفايه دی چې دځينو مسلمانانوپه اداء کولوسره دټولوله ذمې څخه ساقطيږي.

(۴۱۰) السُّلطانُ أحقُّ بصلاتِه (۴۱۱) وَهيَ فرضُ كفايةٍ (۴۱۲) وَشرطُها إسلامُ الميّتِ وَطهارتُه (۴۱۳) ثُمَّ القاضي إن حضرَ (۴۱۴) ثُمَّ إمامُ الحيّ (۴۱۵) ثُمَّ الوليُّ وَلَهُ أن يأذنَ لغيرِه

**ترجمه**: بادشاه له ټولوڅخه زيات حقداردی دجنازي دلمانځه، اوهغه فرض کفايه دی. اوشرط يې دمړده مسلمان والی اوپاکوالی دی، بياقاضي حقداردی که حاضروو، بيادکلي امام، بيادمړده ولي اودلره داحق شته چې بل چاته اجازه ورکړي.

**تشريح**: (۴۱۰) دجنازي دلمانځه داداء کولوحق ترټولولومړی سلطان لره دی په دي شرط چې سلطان حاضروي ولې چې دسلطان په حضورکې بل څوک امام جوړول دسلطان سپکاوی دی اوحال داچې دسلطان

تعظیم واجب دی ،اوله سلطان څخه مراد هغه کس دی کوم لره چې په خلکو ولایت حاصل وي که خلیفه وي او که دهغه نائب،امام محمد رحمه الله په کتاب الاصل کې ذکرکړي دي چې امام الحی له خلیفه څخه مقدم دی .

(۴۱۱)دجنازي لمونځ فرض کفایه دی ولی چې نبی کریم ﷺ دیومرده په باره کې فرمایلي وو چې﴿صلوا علی صاحبکم﴾(تاسې په خپل ملګري باندي دجنازي لمونځ وکړي )صلوادامرصیغه ده اوامردوجوب لپاره دی ،دفرض عین نه کیدلودلیل دادی چې که دجنازي لمونځ فرض عین وای نوضروربه نبی کریم ﷺ خپله هم اداءکاوو حال داچې نبی کریم پخپله پرده له لمانځه اداءکولوڅخه عذربیان کړی وو .

(۴۱۲)اودجنازي دلمانځه لپاره شرط دادی چې مرده به مسلمان وي ولی چې پرکافرباندي دجنازي لمونځ جائزنه دی لقوله تعالی﴿ ولا تصل علی أحد منهم مات أبدا ﴾(اولمونځ مه کوپرکوم یوه باندي له دوئ څخه کله چې مړشي)،همداراز دجنازي لمونځ شفاعت دی اودکافرلپاره شفاعت فایده نه لري ،دوهم شرط دادی چې مرده به پاک وي نوکه په مرده باندي نجاست لګیدلی وو یامرده ته غسل نه وورکړل شوی نوده دجنازي لمونځ جائزنه دی ولی چې مرده من وجه امام دی په دي وجه چې مرده دقوم مخته ایشودل ضروري دی لهذاددہ لپاره طهارت هم شرط دی .

(۴۱۳)قوله ثم القاضی ای ان حضرای ثم القاضی احق بصلاته ان حضر ،یعنی که سلطان نه وو نوبیاقاضی دامامت مستحق دی که حاضروو ولی چې قاضی لره په تولوولایت عامه حاصل دی .

(۴۱۴)قوله ثم امام الحی ای ثم امام الحی احق بصلاته ،یعنی که قاضی هم نه وو نودکلی امام مخته کول مستحب دی ولی چې مرده په خپل ژوندانه کې دده په امام کیدلوراضی وو نوله مرګ څخه وروسته هم دی اولی دی ،لیکن داپه هغه وخت کې دی چې امام الحی دمرده له ولی څخه افضل وي که دمرده ولی افضل وو نوافضل ولی له امام الحی څخه مقدم دی کمافی الدرالمختار:تقدیم امام الحی مندوب فقط بشرط ان یکون افضل من الولی والافالولی اولی وهواحسن(الدرمع الشامية:۱/۶۳۹)

(۴۱۵)قوله ثم الولی ای ثم الولی احق بصلاته ،یعنی بیادمرده ولی دامامت مستحق دی اودمرده ولیان په استحقاق امامت کې په هغه ترتیب سره دي کوم ترتیب چې په ولایت نکاح کې مذکوردی ،مګرپه نکاح کې دښځي زوی پرپلارباندي مقدم دی اودلته پلاراولی بالامامت دی ،که دمرده دوه برابرولیان وو مثلادوه سکني ورونه وو نوکوم چې په عمرکې مشروي هغه به مقدم وي ،اودمرده دقریب لپاره داهم جائزده چې کوم بل چاته دلمانځه اداءکولواجازه ورکړي ولی چې لمونځ اداءکول دده حق دی نوده لره داهم جائزده چې خپل حق ساقط کړي .

ف:پورته ذکرشوی ترتیب دسلطان اودهغه دنائب په حق کې واجب دی یعنی که سلطان موجودوو نوده لره امام جوړول واجب دی حال داچې دامام الحی تقدیم دمرده په قریبانوباندي مستحب دی په دي شرط چې امام الحی دمرده له اولیاو څخه افضل وي کمافی شرح التنویر:وذالک ان تقدیم الولاة واجب وتقدیم امام الحی مندوب فقط بشرطان یکون افضل من الولی والافالولی (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۱/۶۳۹)

(۴۱۵)فان صلی غیرالولی والسلطان أعادالولی(۴۱۶)ولم یصل غیره بعده(۴۱۸)فان دفن بلاصلاة صلی علی قبره مالم یتفسخ

**ترجمه**: او که دجنازي لمونځ اداء کړله سلطان او ولی څخه ماسوا بل چا نو ولی لمونځ راګرځولی شي، او لمونځ دي کوي بل څوك دولی له اداء کولو څخه وروسته، او که ښخ کړای شو دجنازي له لمانځه څخه بغیرنو دده په قبردي لمونځ اداء شي ترهغه پوري چې دی شوریدلی نه وي.

**تشریح**: (۴۱۶) یعنی که په مرده ته له سلطان یانائب سلطان، امام الحی او ولی څخه ماسوا بل چا لمونځ ورکړنو ولی دجنازي دلمانځه دبیرته راګرځولو حق لري ولی چې مرده ته دلمونځ ورکولو حق دمرده اولیاؤلره دی او دااعاده داسقاط فرض لپاره نه بلکه دحق ولی له کبله ده ولی چې له دي څخه مخکې چې کوم خلکو لمونځ ورکړی دی فرض په هغه سره ساقط شول.

(۴۱۷) قوله ولم یصل غیره بعده ای اذا صلی الولی لم یصل غیره بعده، یعنی که ولی دجنازي لمونځ اداء کړنو له دده څخه وروسته چاله په مرده دجنازي بیا اداء کولو اجازه نشته ولی چې فرض خومخکې اداء شول اوس چې کوم لمونځ کیږي هغه نفل دي او نفل په جنازه کې مشروع نه دي.

(۴۱۸) یعنی که یې مرده بغیرله لمانځه څخه دفن کړنو دده په قبردي لمونځ اداء شي ولی چې یوه انصاري ښځه په داسې حال کې ښخه کړای شوه چې نبی کریم ﷺ په هغې دجنازي لمونځ نه و اداء کړی نبی کریم ﷺ ته چې کله معلومات وشو نو نبی کریم ﷺ ددي په قبرلمونځ اداء کړ.

**ف**: دځینو حضراتو رایه داده چې په مذکوره صورت کې تردریو ورځو پوري په مرده دجنازي دلمانځه دادا کولو اجازه شته مګرصحیح داده چې په قبر دلمانځه دادا کولو اجازه دمرده له خرابیدو څخه ترمخکې پوري دی که دري ورځې وي که لږ بزیات وي او که غالب ګمان داشو چې مرده خراب شوی دی نو بیا دلمانځه داداء کولو اجازه نشته. کمافی شرح التنویر: (وان دفن) واهیل علیه التراب (بغیرصلوة) او بهابلاغسل اوممن لاولایة له (صلی علی قبره) استحسانا (مالم یغلب علی الظن تفسخه) من غیرتقدیرهوالاصح لانه یختلف باختلاف الاوقات حراوبرداوالامکنة والمیت سمناوهزالا (الدرالمحتارمع ردالمحتار: ۱/۶۵۲)

## دجنازي دلمانځه طریقه

(۹ ۳) وهی اربع تکبیرات بثناء بعد الاولی وصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم بعد الثانیة ودعاء بعد الثالثة وتسلیمتین بعد الرابعة (۳۲۰) فلو کبر خمسا لم یتبع (۳۲۱) ولا یستغفر لصبی ولا لمجنون ویقول اللهم اجعله لنا فرطا واجعله لنا اجرا وذخرا واجعله لنا شافعا مشفعا (۳۲۲) وینتظر المسبوق لیکبر معه لا من کان حاضرا فی حالة التحریمة

**ترجمه**: او دجنازي لمونځ څلورتکبیرونه دي له ثنا سره له اول تکبیر څخه وروسته او په نبی کریم ﷺ له درود سره له دوهم تکبیر څخه وروسته او له دعاء سره له دریم تکبیر څخه وروسته او له دووسلامونو سره له څلورم تکبیر څخه وروسته، او که امام پنځم تکبیر وواینو دهغه متابعت به نه کیږي، او استغفار دنه کیږي دکوچنی لپاره بلکه دادي وایي یاالله دازموږ لپاره مخته تلونکی او اجر او ذخیره جوړه کړي بزموږ لپاره یې شفاعت کونکی او شفاعت قبول شوی جوړ کړي، او انتظاردي کوی مسبوق ترڅو تکبیرله امام سره ووایي نه هغه کوم چې حاضرنه وي.

**تشريح:**(۴۱۹)يعنى دجنازي دلمانځه کيفيت دادی چې له نيت څخه وروسته دي تکبيرافتتاح ووايي بيادي دنورو لمونځوپه شان سبحانک اللهم وبحمدک الخ ولولي ،بيادي دوهم تکبيروو ايي اوپه نبی کريم ﷺ دي درودشريف ووايي ولی چې دالله تعالى دثناء وروسته دنبی کريم ﷺ ددروددرجه ده لکه چې په تشهدکي همداترتيب دی اوپه همدي ترتيب خطبې وضع شوي دي ،بيادي له دريم تکبيرويلو وروسته دخپل ځان لپاره دمرده لپاره اودټولو مسلمانانولپاره دعاء وکړي ولی چې دالله تعالى له حمداوپرنبی کريم ﷺ له درودڅخه وروسته ددعاء درجه ده لقوله ﷺ اذااراداحدکم ان يدعوفليحمدالله وليصلی علی النبی ﷺ ثم يدعو(يعنی په تاسي کې چې څوک ددعاء کولواراده وکړي نودالله تعالى حمداوپرنبی کريم ﷺ دي درودووايي بيادي دعاء وکړي )نوکه يې ياده وه اومرده بالغ وو نوبنه خبره داده چې دادعاء ولولي اللهم اغفرلحينا وميتناوشاهدناوغائبناوصغيرناوکبيرناوذکرناواناثنااللهم من احييته فاحيه علی الاسلام ومن توفيته فتوفه علی الايمان ،بيادي له څلورم تکبيرڅخه وروسته سلام وګرځوي ولی چې نبی کريم ﷺ ترټولوپه اخري جنازه کې څلورتکبيرونه ويلی دي لهذاله څلورم تکبيرڅخه وروسته دتحليل وخت دی اوتحليل دسلام په ذريعه سره وي په دي وجه به سلام ګرځوي.

**ف:** دجنازي دلمانځه دتکبيرافتتاح ويلوپه وخت به دواړه لاسونه غوږوته پورته کړي اوپه نورو تکبيرونو کې به لاسونه نه اوچتوي ولی چې هرتکبيردپنځه وختې لمانځه درکعت په شان دی اوپه پنځه وختې لمانځه کې له اول رکعت څخه ماسوا په نوروركعتونوکې رفع يدين نشته په همدي شان دجنازي دلمانځه تکبيرونه هم دي ،اوهمداراز له حضرت ابن عباس ﷺ څخه مروی ده انه ﷺ کان اذاصلی علی جنازة رفع يديه فی اولی تکبيرة ثم لايعود(يعنی نبی کريم ﷺ چې به کله دجنازي لمونځ اداء کاوو نوداول تکبيرپه وخت کې به يې لاسونه اوچتول اوبيابه يې نه اوچتول ).

**ف:** دجنازي دلمانځه دواړه سلامونه دي په لوړاوازسره وايي اودعام تعامل له کبله دي ته افضليت حاصل دی. (احسن الفتاوی :۴/۱۹۵)

(۴۲۰)قوله فلوکبرخمسالم يتبع ای لوکبرالامام خمس تکبيرات لم يتبع ،يعنی که امام پنځم ځل الله اکبروو ايه نومقتدی به دهغه متابعت نه کوي ولی چې نبی کريم ﷺ چې اخري دجنازي لمونځ اداء کړی دی په هغه کې دڅلوروتکبيرنوذکردی لهذاپه کوموروايا توکې چې دپنځو ،اوو يااتوتکبيرونوذکردی هغه منسوخ دي .

(۴۲۱)اوکه مرده کوچنی ياليونی وي نودهغه لپاره دي استغفارنه کوي ولی چې کوچنی اوليونی ګنهګارنه وي لهذاددوئ لپاره دي دادعاء ولولي اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ لنا فرطًا واجعله لنا أجرًا وذُخرًا واجعله لنا شافعًا مشفعًا ( ياالله دازموږلپاره مخته تلونکی اواجراوذخيره جوړه کړي بزموږلپاره يې شفاعت کونکی اوشفاعت قبول شوی جوړکړي )،اوکه کوچنی انجلۍ وي نودمؤنث ضمائردي ذکرکوي مثلاً اللَّهُمَّ اجْعَلْها لنا فرطًا واجعلها لنا اجرًا وذُخرًا واجعلها لنا شافعةً مشفّعةً،اوکه يې دادعاء يادنه وي نوکومه دعاء چې يې يادوي هغه دي ولولي .

**ف:** له مجنون څخه مرادهغه مجنون دی کوم چې له بلوغ څخه وړاندی مجنون شوی وي اوترمرګه پوري مجنون وي که له بلوغ څخه وروسته مجنون شوی وي نوپه جنون سره دده مخکنی ګناه نه معافيږي

لهذا داسې مجنون لپاره دي دمغفرت دعاء کوي كمافي الشامية: (قوله ومجنون ومعتوه) هذافي الاصلي فان الجنون والعته الطارئين بعدالبلوغ لايسقطان الذنوب السالفة كمافي شرح المنية. (ردالمحتار: ١/٦٣٥)

(۴۲۲) که کوم شخص دجنازي په لمانځه کې مسبوق وي يعنی دده له راتلوڅخه مخکې امام يوتکبيروواېه نواوس چې دی حاضرشو دامام ددوهم تکبيرانتظاربه کوي کله چې امام دوهم تکبير وواېي نودی دخپل تکبيرتحريمه وواېي ولی چې هرتکبيردرکعت په ځای ولاړدی لهذاکوم تکبيرچې فوت شوی وي مسبوق دي هغه نه شروع کوي، مگرکه کوم شخص له وړاندي لاحاضروو مگرله امام سره يې تکبيرونه وانه وېل نوهغه به دامام ددوهم تکبيرانتظارنه کوي بلکه تکبيردي وواېي اوله امام سره دي شريک شي ولی چې دی دمدرک په شان دی.

ف: دامام ابويوسف رحمه الله په نزدکه مقتدي په داسې حال کې راورسيدوچې امام څلورم تکبيرويلی وو مگرسلام يې نه وو گرځولی نوهم دي له امام سره شريک شي ولی چې تکبيرتحريمه تراوسه پوري شته دامام له سلام گرځولوروسته دي صرف دري تکبيرونه وواېي په همدي قول فتوی ده، كمافي الدرالمختار: (فلوجاء المسبوق (بعدتكبيرة الامام الرابعة فاتته الصلوة) لتعذرالدخول في تكبيرة الامام وعندابي يوسف يدخل لبقاء التحريمة فاذاسلم الامام كبرثلاثا كمافي الحاضروعليه الفتوی ذكره الحلبي وغيره، وقال ابن عابدين: (قوله وعليه الفتوی) ای علی قول ابي يوسف في مسئلة المسبوق خلافالماشي عليه في المتن. (الدرالمختارمع الشامية: ٣/٢٠١)

ف: که له چاڅخه دجنازي دلمانځه څه تکبيرونه تيرشول نودامام له سلام گرځولوڅخه وروسته که دجنازي دپورته کيدلواندیشنه وه نوداکس دي داتکبيرونه مسلسل وواېي ثناء، درودوغيره دي نه واېي قال شارح التنوير: لم يكبران مالتهمابعدالفراغ لسقابلادعاءان خشيارفع الميت علی الاعناق (ردالمحتار: ١/٦٣٧)

(۴۲۳) وَيَقُومُ مِنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ بِحِذَاءِ الصَّدْرِ (۴۲۴) وَلَمْ يُصَلُّوا رُكْبَانًا (۴۲۵) وَلَا فِي مَسْجِدٍ (۴۲۶) وَمَنِ اسْتَهَلَّ صُلِّيَ عَلَيْهِ (۴۲۷) وَإِلَّا

**ترجمه**: او امام دي دريږي دنراودښځې دسينې په برابري، اولمونځ دي نه کوي په دسې حال کې چې سپاره وي، اونه په مسجدکې، اوکوم کوچنی چې اوازوکړي نوپرده دي لمونځ اداء شي، که نه نو نه.

**تشريح**: (۴۲۳) يعنی لمونځ ورکونکی دي دمړه دسينې په برابرودريږي دامستحب ده که مړه نروي که ښځه وي ولی چې دادزړه ځای دی اوپه زړه کې دايمان نوروي نودديځای په برابري کې په دريدلوسره دي لورته اشاره ده چې امام دده دايمان سفارش کوي.

ف: داحنافوپه نزددجنازي دلمانځه له شرائطوڅخه يوشرط داهم دی چې دمړه لاش به مخامخ موجودوي همدالامل دی چې احناف دغائبانه صلوة جنازي قائل نه دي، باقي دنامداره خلکوپرمرگ دملک په اوږده اوساره کې ددوئ جنازي او دحنفي مسلک دخلکوپه دې کې شرکت يوه سياسي حربه ده دکوم چې له مسلک اومذهب سره هيڅ تعلق نشته، دامحض دعوامودخوشحالولوپاره کيږي له کوم څخه چې ځان ساتل ضروري ده. (فتاوی حقانية، ٣/٣٣٣)

(۴۲۴) يعنی په کوم مړه باندي دي دسورلی په حالت کې لمونځ نه کوي دااستحسان دی قياس دجوازتقاضاکوي ولی چې دجنازي لمونځ دعاء ده کوم چې دسورلی په حالت کې هم جائزه ده، داستحسان

وجه داده چې دجنازي لمونځ من وجه صلوة دی ولی چې دده لپاره هم هغه شرائط دي کوم چې دلمانځه لپاره دي لهذا دصلوة په شان داهم دسورلی په حالت کول اداء کول جائز نه دي .

(۴۲۵)قوله ولافی مسجدجماعة ای لایصلی فی مسجدجماعة علی جنازة ،یعنی دجنازي لمونځ دي په مسجدکې نه اداءکوي ولی چې په مسجدجماعت کې بغيرله عذرڅخه دجنازي لمونځ اداء کول مکروه تحريمي دی﴿لقوله ﷺ من صلی علی میت فی مسجد فلاشئ له﴾(چاچې په مسجدکې په مرده لمونځ اداء کړدهغه لپاره هيڅ ثواب نشته ).

ف:په مسجدکې دجنازي دلمانځه څوصورتونه دي ټول مکروه دي يعنی که صرف مرده په مسجدکې وو قوم اوامام له مسجدڅخه دباندي وو ياقوم هم په مسجدکې وو يامرده له مسجدڅخه دباندي وو اوقوم په مسجدکې وو ياامام ،مرده اوبعض قوم له مسجدڅخه دباندي وو اونورقوم په مسجدکې وو كمافی الدرالمختار:(وكرهت تحريما)وقيل (تنزيها فی مسجدجماعة )ای علی الميت (فيه )وحده اومع القوم (واختلف فی الخارجة )عن المسجدوحده اومع بعض القوم(والمختار الكراهة)مطلقا.(الدرالمختارعلی هامش الشامية:۶۵۳/۱)

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزدپه هيڅ حال کې هم مکروه نه دی ولی چې مروی ده چې نبی کريم ﷺ دسهيل بن مضياء دجنازي لمونځ په مسجدکې اداء کړ،زموږدليل دنبی کريم ﷺ ارشاددی ﴿من صلی علی الميت فی المسجدفلاشئ له﴾(چاچې په مسجدکې په مرده لمونځ اداء کړدهغه لپاره هيڅ ثواب نشته ).امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې نبی کريم ﷺ دعتکاف يادباران دعذرله کبله دسهيل بن مضياء دجنازي لمونځ په مسجدکې اداءکړی وو ،اودعذرله کبله موږهم دعدم کراهت قائل يو كمافی الشامية:(تتمة)انماتكره فی المسجدبلاعذرفان كان فلاومن الاعذارالمطر كمافی الخانية والاعتكاف كمافی المبسوط(ردالمحتار:۶۵۴/۱)

(۴۲۶)يعنی که کوچنی له پيداکيدلوڅخه وروسته اواز وکړيعنی کوم داسې څه موجودشول کوم چې دکوچنی په ژوند دلالت وکړي بيامړشونوددي کوچنی به نوم هم ايښودل کيږي اوده ته غسل هم ورکول کيږي اوپرده به دجنازي لمونځ هم اداء کيږي﴿لقوله ﷺ اذااستهل المولودصلی عليه وان لم يستهل لم يصلی عليه﴾ (يعنی کله چې کوچنی اوازوکړي نوپرده دي دجنازي لمونځ اداء شي اوکه يې اوازونه کړنوپرده دی لمونځ نه اداءکيږي ).

(۴۲۷)قوله والاای وان لم يستهل لايصلی عليه ،يعنی که له پيداکيدلوڅخه وروسته په کوچنی کې دژوندانه کوم علامت نه شومعلوم نوده لره به دبنې ادم داولاددتکريم له امله دکفن په شان په يوه ټوټه کې ونغښتل شي اوپرده به دجنازي لمونځ نه اداء کيږي لماروينا.

ف:مختارداده چې غسل ورکړل شي كمافی شرح التنوير:(والا)يستهل (غسل وسمی )عندالثانی وهوالاصح فيفتی به علی خلاف ظاهرالرواية اكرامالبنی ادم كمافی ملتقی البحار.(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۶۵۵/۱)

ف:خودکشی کونکی (يعنی ځان پخپله وژونکی)که څه هم ګنهګاردی مګرکافرنه دی په دي وجه پرده دجنازي لمونځ فرض دی همداراز دده لپاره دمغفرت دعاء کول اوايصال ثواب جائزدی .(احسن الفتاوی ۲۰۶/۴)

(۴۲۸)كصبی سبی مع أحدأبويه (۴۲۹)(إلاأن يسلم أحدهما أوهو أولم يسب أحدهمامعه (۴۳۰)ويغسل ولی مسلم الكافرويكفنه ويدفنه

**ترجمه** :لكه څرنګه چې په هغه كوچني (لمونځ نه اداءكيږي )كوم چې بندي كړاى شي له مورا وپلار څخه له يوه سره، مګر داچې له مورا وپلار څخه يويا پخپله كوچني مسلمان شي يانه وي بندي كړل شوى له مورا وپلار څخه يوله كوچني سره، اوغسل وركولى شي مسلمان قريب كافرته اوكفن وركولى شي اودفن كولى يې شي .

**تشريح** :(۴۲۸)قوله كصبي سبي اى كمالايصلى على صبي اسرمع احدابويه ،يعني لكه څرنګه چې په هغه كوچني باندې دجنازې لمونځ نه اداءكيږي كوم كوچني چې له خپلې موريا پلار سره له دارالحرب څخه رمور سره بندي شي اوپه بندكې مړشي په داسې حال كې چې دده والدين كافروي ولې چې په دې صورت كې كوچني دموراوپلار دمتابعت له امله كافر ګڼل كيږي اودكافر دجنازې لمونځ نشته .

(۴۲۹)البته كه دداسې كوچني له والدينوڅخه يوه اسلام قبول كړنوبيابه پرده دجنازې لمونځ اداءكيږي ولې چې كوچني په دين كې دخيرالابوينوتابع وي ياكوچني پخپله اسلام قبول كړنوبيابه هم دده دجنازې لمونځ اداءكيږي ولې چې استحساناًدده اسلام قبولول صحيح دي ،ياصرف كوچني بندي شي دده والدين نه وي بنديان نودداراالاسلام دمتابعت له كبله مسلمان ګڼل كيږي په دې وجه به دده دجنازې لمونځ اداءكيږي .

(۴۳۰)كه دكوم كافرقريب مسلمان وي كافرمړشونودده دامسلمان قريب دي ده لره غسل وركړي بيادې كفن وركړي بيادې ښخ كړي ولې كوم وخت چې ابوطالب مړشونوحضرت علي ﷺ نبي كريم ﷺ ته خبروركړنبي كريم ﷺ وفرمايل فاغسله وكفنه وادفنه(يعني ده ته غسل وركړه اوكفن وركړه اودفن يې كړه )،مګرمسنون غسل اوكفن وغيره مرادنه دي بلكه دناپاكې جامې په شان دي ومينځې اوپه ټوكركې دې وپيچې اوښخ دې كړي ولې چې په مسنون طريقه سره غسل وغيره كرامة وتعظيماوركول كيږي حال داچې كافردتعظيم مستحق نه دى .

**ف**:داپورته ذكرشوى حكم دكافراصلي دى دمرتدحكم دانه دى بلكه هغه دې بې له غسله اوكفنه دسپي په شان په كندې كې وغورځول شي كمافي شرح التنوير:اماالمرتدفيلقى في حفرة كالكلب ولايغسل ولايكفن ولايدفع الى من انتقل الى دينهم(الدرالمختارمع ردالمحتار:۱/۶۵۷)

**ف**:په دې حادثاتي(يعني له پېښوڅخه ډكې) زمانه كې ځينې وختونه څه داسې پېچلې مسائل پېښيږي دكوموچې حل په هغه وخت كې مشكل وي په دې وجه دلته دځينوداسې پېچلومسائلوحل ليكل كيږي

(۱)كوم لاش چې وپرسيږي اوپړسېدلي اوپېټاو شي ده هغه دجنازې لمونځ ساقط دى همداشان چې دكوم لاش غوښه وغيره ټول سره جلاشوي وي اوصرف هډوكې يې پاتې وي نوهغه دغسل وركولوضرورت نشته اونه دده دجنازې لمونځ اداءكيږي بلكه په يوه پاكه ټوټه كې دې وپيچې اودفن دې كړي كمافي البحر:(قوله وصلي على قبره مالم يتفسخ )وقيدبعدم التفسخ لانه لايصلى عليه بعدالتفسخ لان الصلوة شرعت على بدن الميت فاذاتفسخ لم يبق بدنه قائما (البحرالرائق :۲/۱۸۲)

(۲)كوم لاش چې له خاوروخځلووغيره څخه راكښل ممكن نه وي نوده هغه دجنازې لمونځ به په هغه حالت كې اداءكيږي اوغسل اوكفن وركول معاف دي كمافي الشاميه:(تنبيه)ينبغي ان يكون في حكم من دفن بلاصلوة من

يردى فى نحو بئر او وقع عليه بنيان ولم يمكن اخراجه بخلاف مالو غرق فى بحر لعدم تحقق وجوده امام المصلى تامل (ردالمحتار: ۱/۶۵۲)، په دې شرط چې د مړه د عدم تفسخ گمان به غالب وي د شک په حال کې بالاتفاق پر ده د جنازې لمونځ صحيح نه دى. (احسن الفتاوى: ۴/۲۱۱)

(۳) کوم لاش چې وسوځيږي او سکاره شي نو ده لره غسل او کفن ورکول او د جنازې لمونځ ورکول هيڅ هم واجب نه دي بلکه په کوم ټوټه کې دي وپيچي او دفن دي کړي، او که د بدن اکثره برخه محفوظه وي يا ټول سوځيدلى وي مگر معمولى سوځيدلى وي غوبنه پوستكى اوهډوکي سالم وي نو ده لره به غسل او کفن ورکول کيږي او بايد د جنازې لمونځ يې اداء شي. (كذافى فتاوى حقانية: ۳/۴۴۰)

(۴) که د مسلمانانو او غير مسلمانانو لاشونه سرگډ وډ شول نو که په يوه طريقه سره هم د دوئ ترمنځ امتياز نشواى کيداى نو بيابه د اکثل کيږي چې اکثريت د چا دى نو که اکثريت د مسلمانانو و نو ټولو سره به د مسلمانانو په شان معامله کيږي البته د جنازې په لمانځه کې به صرف د مسلمانانو نيت کيږي ولې چې په کافرانو د جنازې د لمانځ نيت صحيح نه دى، او که د کافرانو لاشونه ډيرو و نو ټولو لره به غسل او کفن ورکړل شي او د مسلمانانو په نيت کولو سره به پر ټولو د جنازې لمونځ اداء شي بيا دي ټول د کافرانو په هديره کې ښخ کړاى شي او که مسلمانان او کافران په تعداد کې سره برابر وو نو د دوئ هم دا پورته ذکرشوى حکم دى البته د دفن په صورت کې احوط داده چې د دوئ لپاره جلا هديره جوړه شي كمافى شرح التنوير: اختلط موتانا بكفار ولا علامة اعتبر الاكثر فان استووا غسلوا واختلف فى الصلوة عليهم ومحل دفنهم كدفن ذمية حبلى من مسلم قالوا والاحوط دفنها على حدة: وقال ابن عابدين الشامى رَحِمَهُ اللهُ: وقيل يصلى ويقصد المسلمين لانه ان عجز عن التعيين لايعجز عن القصد كمافى البدائع قال فى الحلبة فعلى هذا ينبغى ان يصلى عليهم فى الحالة الثانية ايضا اى حالة ما اذا كان الكفار اكثر لانه حيث قصد المسلمين فقط لم يكن مصليا على الكفار والا لم تجز الصلوة عليهم فى الحالة الاولى ايضا مع ان الاتفاق على الجواز فينبغى الصلوة عليهم فى الاحوال الثلاث كمافى قالت به الايمة الثلاث وهو اوجه قضاء لحق المسلمين بلا ارتكاب منهى عنه (الدر المختار مع ردالمحتار: ۱/۶۳۵)

(۵) د کوم مړه که له کومې نښې څخه مسلمان والى معلوم نشي نو له کومې علاقې څخه چې د ده لاش پيدا شوى دى نو په هغه ځاى کې د مسلمانانو اکثريت وي نو له ده سره به د مسلمانانو په شان معامله کيږي او که په هغه ځاى کې د غير مسلمانانو اکثريت وي نو له ده سره به د غير مسلمانانو معامله کيږي كمافى شرح التنوير: ولم يدر امسلم ام كافر ولا علامة فان فى دارنا غسل وصلى والالا (حواله بالا)

(۶) که د چاپوره لاش پيدا نه شو صرف لاس يا پښه يا سر يا کوم بل اندام يې پيدا شو نو ده لره دې غسل وغيره نه ورکوي بلکه په کومه پاکه ټوټه کې دې وپيچي او دفن دې کړي، همدا شان که يې د جسم متفرقې اجزاوې پيدا شوې او د دوئ مجموعه تر نصف کمه وه نو د دې اندامونو هم همدا حکم دى چې بې له غسل وغيره دې په يوه ټوټه کې وپيچي او دفن دې کړي، همدا شان که د چا د جسم ... برخه بې له سر څخه پيدا شوه نو دهغې هم همدا حکم دى، او که نيمايې برخه له سر سره پيدا شوه نو بيا ... ي غسل او کفن ورکړي او له جنازې کولو څخه وروسته دې ښخ کړي، او که له نيمايې څخه زياته برخه يې بې له سر څخه پيدا شوه نو بيا دې هم غسل او کفن ورکړي او جنازه دې وکړي او دفن دې کړي كمافى شرح التنوير: (وجد رأس آدمى) او احد شقيه (لايغسل ولايصلى عليه) بل يدفن الاان يوجد اكثر من نصفه ولو بلا رأس (ردالمحتار: ۱/۶۳۴) وقال ابن نجيم: ولو وجد الاكثر من الميت او النصف مع الراس غسل وصلى عليه (بحر الرائق: ۲/۱۷۴)

ف: ديو چادمسلمان والى دري نښاني دي ختان ،خضاب اوحلق عانه كمافي الشامية: علامة المسلمين اربعة الختان والخضاب ولبس السوادو حلق العانة قلت في زماننا لبس السوادلم يبق علامة للمسلمين (ردالمحتار: ١/٦٥٣)

(٧)كه ديوه لاش اكثره برخه پيداشوه په كومه چې دجنازي لمونځ اداشواوبنخه كړاى شوه وروسته نوراندامونه پيدا شول نوددي اندامونودجنازي لمونځ نشته بلكه دغسې دي په يوه جامه كې ونغاړي اوبنخه دي كړي كمافي الهداية: واذاصلي على الاكثرلم يصل على الباقي اذاوجد(هدايه: ١/١٥٩)كه په پوندكې دچادبدن كوم اندام پرې شي نودهغه هم غسل اوكفن اودجنازي لمونځ نشته بلكه په كوم ټوكركې دې ونغاړي اودفن دي كړي.

## دجنازي دوړلوبيان

(٤٣١)وَيُؤْخَذُ سَرِيرُهُ بِقَوَائِمِهِ الْأَرْبَعِ (٤٣٢)وَيُعَجَّلُ بِهِ بِلَا خَبَبٍ (٤٣٣)وَجُلُوسٌ قَبْلَ وَضْعِهَا (٤٣٤)وَمَشْيٌ قُدَّامَهَا (٤٣٥)وَضَعْ مُقَدَّمَهَا عَلَى يَمِينِكَ ثُمَّ مُؤَخَّرَهَا ثُمَّ مُقَدَّمَهَا عَلَى يَسَارِكَ ثُمَّ مُؤَخَّرَهَا

**ترجمه**: اوودي نيسي دده كټ له څلوروپښوڅخه ،اوپه تلوارتلواردي ويسي مكرمندي دى نه وهي ،او نه دي كښيني ترجنازي اېښودلوله مخه ،اونه دي ځي وړاندي ترجنازي ،اوكښيږدي دي دكټ مخكنۍ راسته پښه پرخپله راسته اوږه باندي بيادشاراسته پښه بيادكټ مخكنۍ چپه پښه پرخپله چپه اوږه باندي اوبيادشاچپه ښپه.

**تشريح**: (٤٣١)يعنى كله چې خلگ مړده پركټ اوچتوى نودكټ څلورسره پښې دي ونيسي ولى چې له حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه مروى ده من السنة ان تحمل الجنازة من جوانبها الاربعة (يعنى مسنون داده چې جنازه ددي له څلورو طرفونوڅخه اوچته كړاى شي )،همداراز په څلورونفروسره په اوچتولوكې دجنازي اكرام هم دى اودمړده په ځمكه له لويدلوڅخه حفاظت هم دى.

(٤٣٢)بيادي مړده په تلوراسره وړي مكرمنډي دي نه وهي ولى چې له نبى كريم ﷺ څخه چې كله په دي باره كې پوښتنه وشوه نونبى كريم ﷺ وفرمايل مادون الخبب (يعنى په تيزي سره يې وړئ مكرمنډه مه وهئ )،اوپه تيزى سره دوړلوحكم په دي وجه دى چې كه دامړده نيک وي نوده لره دالله تعالى دربارته زررسول مناسب دي اوكه خداناخواسته بدوي نوده لره له خپلوغاړوڅخه زرلري كول مناسب دي لهذاپه هرصورت كې ده لره تيز وړل مناسب دي ،مكرمنډه دي نه وهي ولى چې په دي كې دمړده تحقيردى.

(٤٣٣)قوله وجلوس قبل وضعها اى بلاجلوس الخ،يعنى كله چې مړده ويسي اوقبرته ورسيږي نودجنازي په ځمكه له اېښودلوڅخه وړاندي دي خلگ نه كښيني دخلگوكښيناستل مكروه دي ولى چې نبى كريم ﷺ فرمايلي دي چې كوم كس چې دجنازي سره ځي هغه دي له جنازي اېښودلوڅخه وړاندي نه كښيني، همداراز كله په جنازه كې دخلگودكومک ضرورت وي نوپه وخت سره مددكول به ډيرممكن په هغه وخت كې وي چې خلگ ولاړوي.

(۴۳۴) قوله ومشى قدامها أى بلامشى قدام الجنازة ،يعني خلک دي له جنازي څخه وړاندي نه ځي ﴿ لحديث ابن مسعود رضي الله عنه قال امرنا رسول الله صلى الله عليه وسلم باتباع الجنازة ﴾ (رسول الله ﷺ موږ ته داتباع جنائز امرو کړ) داتباع اطلاق په وروسته تګ باندي کيږي نه په وړاندي تللو باندي ،همدا راز حضرت علي رضي الله عنه به له جنازي څخه وروسته تللو او ويې فرمايل چې دجنازي په وروسته تګ کونکيو ته په وړاندي تګ کونکيو دومره فضليت حاصل دی څومره چې فرض لمانځه لره په نفل لمانځه حاصل دی .

ف:ميت که همسايه وي که قريب وي يامرده کوم صالح انسان وي نو دده له جنازي سره ترهديرې پورې تلل له نوافلو څخه افضل دی .(احسن الفتاوی ۴/۲۲۴)

ف:دجنازي دوړلو په وخت کې دي خلک دنيايي خبري نه کوی او نه دي راسته او کيڼ لورته ګوري ولی چې په دې سره زړه سختيږي ،بلکه خاموش دي وي او که ذکر کوي نو په کثرت سره دي تسبيح او تهليل وايي ليکن په سوکه اوازسره دي وايي په لوړ اواز دي نه وايي قال ابن عابدين :وينبغي لمن تبع الجنازة ان يطيل الصمت وفيه عن الظهيرية فان اراد ان يذكر الله تعالى يذكره في نفسه لقوله تعالى انه لايحب المعتدين اى المجاهرين بالدعاء وعن ابراهيم انه كان يكره ان يقول الرجل وهو يمشي معها استغفروا له غفر الله لكم (ردالمحتار:۱/۶۵۸)

(۴۳۵) او دجنازي له وړونکيو څخه هريوه لره په کار ده چې اول راسته طرف ته په ترجيح ورکولو سره دجنازي راسته دسرپښه په خپله راسته اوږه کښيږدي بيا دهغې دپای پښه په خپله کيڼه اوږه کښيږدي بيا جنازي دکيڼ طرف مخکنی برخه په خپل کيڼه اوږه کښيږدي بيا وروستنی برخه په خپله کيڼه اوږه کښيږدي ولی چې ددي تفصيل مطابق ابتداء باليمين متحققه کيږي .

(۴۳۶) وَيُحْفَرُ الْقَبْرُ وَيُلْحَدُ (۴۳۷) وَيُدْخَلُ مِن قِبَلِ الْقِبْلَةِ (۴۳۸) وَيَقُولُ وَاضِعُهُ بِسْمِ اللهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللهِ (۴۳۹) وَيُوَجَّهُ إِلَى الْقِبْلَةِ وَتُحَلُّ الْعُقْدَةُ (۴۴۰) وَيُسَوَّى اللَّبِنُ عَلَيْهِ وَالْقَصَبُ لَا الْآجُرُّ وَالْخَشَبُ

**ترجمه** :او قبر دي وکيندل شي او لحد دي جوړ کړای شي ،او داخل دي کړای شي دقبله له طرفه ،او په قبر ايښودونکی دي وايي بسم الله وعلى ملة رسول الله ،او متوجه دي کړای شي دقبلې لورته او غوټه دي ورخلاصه کړي ،او برابري دي کړي پرده خامې خښتې يانلان نه پخې خښتې او لرګي .

**تشريح** :(۴۳۶) بيادقبرو کيندنې او لحددي جوړ کړي ،لحدادا دی چې تول قبرو کيندي دقبلې لورته دي دنالي په شان ځای جوړ کړي او په هغه کې دي مرده دفن کړي ،زموږ په نزد قبر کښل او لحد جوړول مسنون دي ﴿ لقوله ﷺ اللحد لنا والشق لغيرنا ﴾ (يعني لحد زموږ لپاره دی او دنورو لپاره شق دی ) په دې شرط چې ځمکه نرمه نه وي ،که ځمکه داسې نرمه وي چې لحد جوړول ممکن نه وي نو شق جائز دی ،او شق دادی چې پلن قبرو کيندل شي او دده په دننه (يعني منځ ) کې نری شيله جوړه کړي او په هغه کې مرده دفن کړي .

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزد شق مسنون دی ولی چې له اهل مدينه څخه همدا متوارث ده چې هغوئ دمرده لپاره شق جوړوي ،امام شافعي رحمه الله ته خواب ورکړل شوی دی چې دمدينې منورې ځمکه نرمه ده هلته لحدجوړول سخت دي په دې وجه اهل مدينه دلحد په ځای شق اختيار کړی دی .

ف:قبردي دمنځنې قدلرونکی انسان دوسط په اندازه ژوروي او که له څخه هم زيات ژور شي نو ښه ده ولی چې مقصود دادی چې دنعش بدبوی دباندي نه راووځي او کوم ځناورده نقصان ونه رسوي کمافي الشامية :(قوله

مقدارنصف قامة الخ)اوالی حدالصدروان زادمقدارقامة فهواحسن كمافى الذخيرة فعلم ان الادنى نصف القامة والاعلى القامة ومابينهمابينهما وهذاحدالعمق والمقصود منه المبالغة فى منع الرائحة ونبش السباع (ردالمحتار: ۱/۶۵۹)

(۴۳۷)دمرده په قبرکې دداخلولو طريقه داده چې مرده دې دقبلې له طرف څخه داخل کړي ولې چې قبله محترمه او معظمه ده لهذا اله همدې لورې څخه داخلول مستحب دي په دې شرط چې د قبر دنړيدلو خطره نه وي که نه نو دسرياپښوله لورې دې داخل کړي.

ف: دامام شافعی رحمه الله په نزددې مرده دقبردسرياپای خواته کښېښودل شې بيادې له دپښويا سرله طرف کښې کړي او قبرته دې دننه کړي ولې چې له حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چې نبی کريم ﷺ دسرله لورې قبرته کښته کړل شو. امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې دنبی کريم ﷺ قبرته دداخلولو په باره کې روايات مضطرب دي ولې چې دحضرت ابن عباس رضي الله عنه د روايت په مقابله کې دابراهيم التيمي روايت دی چې نبی کريم ﷺ يې قبرته دقبلې له لورې کښته کړی وو .همدارازممکنه ده چې دځای دتنگۍ له امله يې نبی کريم ﷺ دسرله طرفه قبرته داخل کړی وي.

(۴۳۸)مرده قبرته داخلولو په وخت کې دې دادعاء ويل کيږي بسم الله وعلى ملة رسول الله ولې چې حضرت ذوالبجادين رضي الله عنه قبرته دکښته کولو په وخت کې نبی کريم ﷺ همدا الفاظ فرمايلې وو ،همدارازله حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چې كان النبى ﷺ اذادخل الميت القبر قال بسم الله وعلى ملة رسول الله (يعنی نبی کريم ﷺ چې به کله مرده قبرته داخلوی نوبسم الله وعلى ملة رسول الله به يې فرمايل).

(۴۳۹)په لحدکې په اېښودلو سره دې مرده دقبلې لورته متوجه کړي يعنی په راسته اړخ په څملولو سره دې دقبلې لورته متوجه کړي (لحديث علی رضي الله عنه انه قال مات رجل من بنى عبدالمطلب فقال ﷺ ياعلى استقبل به القبلة استقبالا)(يعنی دبنی عبدالمطلب څخه يوکس مړشونونبی کريم ﷺ حضرت علی رضي الله عنه ته وفرمايل چې دی دقبلې لورته متوجه کړه )بيا په قبرله اېښودلو څخه وروسته دې دده دکفن غوټه خلاصه کړي کومه چې دکفن دخلاصيدلو دخوف له کبله لفافې ته ورکړل شوي وه ولې چې اوس دکفن دمنتشر کيدلو خوف نشته.

(۴۴۰)له دې وروسته دې لحدته خامې خښتې يابانس ودوروي ولې چې دنبی کريم ﷺ په قبرمبارک يې خامې خښتې لګولې وي ،اوپه بانس اېښودلو کې په دې وجه څه مضائقه نشته چې داپه زرنه خرابيدلو کې دخامو خښتو په څيردی ،په قبرکې دپخو خښتو اولرګيانو لګول مکروه دي ولې چې دادواړه شيان داستحکام عمارت لپاره وي او قبر دخرابيدو اوبربادېدلو ځای دی.

(۴۴۱)ويسجى قبرهالاقبره (۴۴۲)ويهال التراب (۴۴۳)ويسنم القبر ولا يربع ولا يجصص (۴۴۴)ولا يخرج من القبر)(الاأن تكون الأرض مغصوبة

**توجمه**: اوپټ دې قبردښځې نه دنارينه ،اوورباندې دې واچوي خاورې ،اوقبردې دکوپه شان جوړکړي اومربع دې نه جوړوي اونه دې په چونه جوړوي ،اومرده دې له قبرڅخه نه راباسي مګرداچې ځمکه دغصب وي.

**تشريح** :(۴۴۱)دښځې دښخولو په وخت کې دې ددې په قبرپرده وکړل شي ولې چې دښځوحالت مبنی پرستردی اودنارينه په قبردې پرده نه کوي ولې چې حضرت علی رضي الله عنه له دې څخه منع کړې ده که ديوعذرله کبله وو نوجائزدی مثلادباران ياګرمی له کبله.

(۴۴۲)او س له دنيا څخه د پټولو لپاره دي په مرده باندي خاوري واچوي دکوم لورته چي په دي ايت مبارک کي اشاره ده ﴿ لِيُرِيَهُ كَيْفَ يُوَارِي سَوْأَةَ أَخِيهِ ﴾ .

(۴۴۳)قبر دي مسنم يعنی دکوپه شان جوړکړي اوله ځمکي څخه دي يوه لويشت ياله هغه څخه لږلوړ جوړکړي .قبر دي مسطح يعنی مربع نه جوړوي ولی چي نبی کريم ﷺ دقبروله مربع جوړولو څخه منع فرمايلي ديه ،همداراز ابراهيم نخعی رحمه الله فرمايي چي کوم کس چي دنبی کريم ﷺ ،حضرت ابوبکر رضی الله عنه اوحضرت عمر رضی الله عنه قبرونه ليدلی وو هغه ماته وويل چي ددوئ قبرونه مسنم يعنی دکوپه شان دی ،په قبردي چونه ،سيمنټ وغيره نه لگوي ولی چي دنبی کريم ﷺ ارشاددی ﴿لاتجصصوا القبور ولاتبنوا عليها ولاتقعدوا عليها﴾(يعنی مه په قبرونه چونه لگوئ اوپه قبرونه تعميرجوړوئ اومه په قبرونو کښينئ).

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزد قبر څلورکونجه جوړول مسنون دي ولی چي نبی کريم ﷺ دخپل زوی ابراهيم قبر څلورکونجه جوړکړی وو ،امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چي دابراهيم بن محمد ﷺ قبرپه پيل کي څلورکونجه وو وروسته بيادکوپه شان کړل شوي وو .

ف:نن صباپه ځينو مملکتونوکي دمرده دفن کولو لپاره تابوت استعماليږي ،دتدفين مسنونه طريقه داده چي په خاوروکي تدفين وشي په دي وجه په تابوت کي دمرده تدفين مکروه گڼل شوی دی که دلرگي وي که دوبري اوکه داورسپيني ،البته فقهاو دضرورت په ځای کي په تابوت کي دتدفين اجازت ورکړی دی اوپه دي صورت کي هم بنه طريقه داده چي په تابوت کي دننه له برخي سره چي دمرده بدن نښلي هلته دي خاوري واچول شي يادي گل ورکړل شي اوراسته اوکيږ لورته دي. خامي خښتي کښيښودل شي .......عموما فقهاو دخپلي زماني داحوالوپه لحاظ سره له ضرورت څخه دځمکي زيمداره والی مرادکړی دی لهذاپه داسي ځايونوکي خوپه تابوت کي تدفين جائزدی ،که په کوم ملک کي په قانونی لحاظ سره صرف په تابوت کي دمرده دتدفين اجازه وي نوداهم حاجت متصورکيږي،البته په مسلمانانوفرض ده چي دمناسبو قانونی وسائلو په ذريعه دي په داسي قوانينوکي دتبديلي کوشش وکړي.(جديد فقهی مسائل ۱/۱۷۸:)

(۴۴۴)له دفن کولو څخه وروسته دي مرده له قبر څخه نه راکاږي ولی چي له دي څخه ممانعت شوی دی مگرکه دقبر ځمکه دغصب وي نوکه دځمکي مالک راکښل وغواړي نودده دحق له کبله به راکښل کيږي .

ف:په قبرتعميردزينت لپاره حرام دی اودااستحکام لپاره مکروه دی اوپه قبرونه ځارونه غوړول هم مکروه دي کمافي الشامية:(قوله ولايرفع عليه بناء )ای يحرم لوللزينة ويكره لوللاحكام بعدالدفن ........(تتمة )فی الاحكام عن الحجة تكره الستورعلى القبور(ردالمحتار:۱/۶۶۲ )

ف:پرقبردنښاني لپاره نوم اوتاريخ وفات ليکل جائزدي ،دقران کريم ايت ،شعراودمرده صفتونه ليکل په هرکيف ناجائزدي .(احسن الفتاوی:۴/۲۰۹)

# دحیله اسقاط بیان

ف: زموږ په علاقه کې دحیله اسقاط ډیر اهتمام کیږي دحیله اسقاط دمشروع والی تصریح دامت فقهاو کړي ده مګر ددي دجواز لپاره یې شرائط هم لیکلي دي له کوم ځخه بغیر چې حیله اسقاط محض یورواج اوبدعت جوړیږي اوداهم یقیني ده چې زموږ په علاقه کې په دي حیله کې دفقهاو دبیان کړي شرائطو ځه نوم اونښه نشته ،اصلاداحیله په هغه صورت کې مشروع ده چې که دمرګ په وخت کې دمسلمان په ذمه دالله تعالی حقوق پاته وي مګر دده دمیراث ثلث دهغو لپاره کفایت نه کوي نوفقهاو داحیله ایجادکړي ده ترڅو ددي مسلمان ذمه فارغه شي کنه په مالدارکس باندي واجب ده چې وصیت وکړي چې زماپرذمه فلانی فلانی حق شته دهغه فدیه دي ورکړل شي لکه ځرنګه چې علامه تقی الدین البرکوی رحمه الله لیکي الواجب علیه ان یوصی من ماله للفائتة بقدرمااحتمل الثلث ,(جلاء القلوب علی هامش شرح شرعة الاسلام: ص۶۷)اوعلامه شامی رحمه الله لیکي :وعلیه ان الایصاء واجب ان کان له مال (رسائل ابن عابدین: ۱/۲۱۹)

اوکه له ده سره مال وي اودی دفدیه ورکولووصیت نه کوي بلکه دوراسقاط وصیت کوي نوګنهکاریږي کماقال ابن عابدین فان اوصی باقل وامر بالدورترک بقیة الثلث للورثة اوتبرع به لغیرهم اثم بترک ماوجب علیه (شامی: ۲/۷۳) اوعلامه تقی الدین البرکوی رحمه الله لیکي :واماذااوصی بالدوروأوصی ببقیة الثلث فی التبرعات کماهوالعادة فی زماننا اولم یوص بهااصلافقدأثم بترک ماوجب علیه (جلاء القلوب: ص۶۷)

لهذاکه له چاسره مال نه وو یادومره لږوو چې دهغه ثلث دحقوقولپاره کافی نه وو نواوس حیله اسقاط کولی شي لکه ځرنګه چې صاحب مراقی الفلاح لیکي: (وان لم یف ماأوصی به) المیت (عما علیه) اولم یکف ثلث ماله اولم یوص بشیء وارادأحدالتبرع بقلیل لایکفی فحیلته لابراء ذمة المیت عن جمیع ماعلیه ان (یدفع ذالک المقدار) الیسیر بقدر تقدیره بشیء من صیام اوصلوة اونحوه ویعطیه (للفقیر) بقصداسقاط مایریدعن المیت (فیسقط عن المیت بقدره ثم) بعدقبضه (یهبه الفقیر للولی) للأجنبی (ویقبضه) لتتم الهبة (مراقی الفلاح شرح نورالایضاح: ص۳۵۷)

اوحیله اسقاط کول صحیح دي که میت وصیت کړی وي اوکه یې وارث له خپله طرفه کوي لکه ځرنګه چې علامه شامی رحمه الله لیکي :اولم یوص بشیء وارادالولی التبرع الخ واشاربالتبرع الی ان ذالک لیس بواجب علی الولی ونص علیه فی تبیین المحارم فقال لایجب علی الولی فعل الدوران وان اوصی به المیت لانها وصیة بالتبرع (شامی: ۲/۷۳)

مګردوراسقاط مطلق نه ده بلکه ددي مشروعیت مشروط بالشرائط ده لکه ځرنګه چې نفل لمونځ کول مشروع دي مګر مطلق نه ده بلکه مشروط بالشرائط دی چې لمونځ کونکی به اودس لري ،اوبدن ،جامه اومکان به پاک وي وغیره وغیره نو که چیرته داشرائط نه وو نوپه لمونځ کولوکې ثواب نشته بلکه بې له شرائطولمونځ کول ګناه ده ،همداشان دوراسقاط دضرورت په وخت کې مشروع ده مګرمشروط بالشرائط دی که شرائط موجودوو نومفیده ده که نه نو ګناه ده ددوراسقاط شرائط په لاندي ډول سره دي.

نمبر۱. په کوم مال سره چې دوراسقاط کیږي هغه به مشترک بین الحاضرین والغائبین نه وي اوکه مشترک وو نوپه دي مال سره دوراسقاط کول جائز نه دي ولی چې نبی کریم ﷺ فرمایي لایحل مال امرء الابطیب نفس منه ،اودغائب طیب نفس معلوم نه دی ،اوعلامه شامی رحمه الله لیکي :ویجب الاحتراز ایضاعن جمیع الصرة واستیهابهاواستقراضهامن غیرمالکهااوم احدالشریکین بدون اذن الاخر (رسائل ابن عابدین: ۱/۲۲۵)

نمبر۲. دا مال که د مړه میراث وو نو مشترک بین الصغار والکبار به نوي که نه نو په دي مال سره دورکول جائز نه دی ولی چې د نابالغ هبه صحیح نه ده یعنی د نابالغ په هبه کولو سره د ده ملک نه ختمیږي او سره له قیام ملک د امال فقیرته ورکول جائز نه دی قال الله تعالی (ان الذین یاکلون اموال الیتمی ظلما انما یاکلون فی بطونهم نارا وسیصلون سعیرا)

نمبر۳. په دوره اسقاط کې به نابالغ او مجنون نه وي ولې چې دوئ ته د اسقاط د مال په ورکولو سره دوئ د هغه مالکین جوړیږي او له دوئ څخه بیا بیرته اخیستل جائز نه دي ولی چې د دوئ هبه صیحیح نه ده لکه څرنګه چې علامه شامی رحمه الله لیکي: ویجب الاحتراز ایضا عن احضار قاصر او معتوه او رقیق او مدبر لانه اذا اعطی الوصی لاحدهم ملکه وهبته غیر صحیحة فلا تعطی الصرة لید قاصر او غیر عاقل او مملوک (رسائل ابن عابدین: 1/225)

نمبر۴. دوره اسقاط دي په فقیرانو وکړي په اغنیاوسره جائز نه ده لکه څرنګه چې علامه برکوی رحمه الله لیکي: ثم ههنا امر غامض یجب التنبیه له وهو ان المتصدین لتنفیذ هذه الوصایا فی زماننا هذا من الأئمة والمؤذنین وامثالهم قد غلب علیهم الجهل وحب الدنیا وضعف خوف الآخرة فلا یفعلونه علی وجه المشروع اذ غرضهم لیس الا اخذ المال بای طریق کان مثلا لا یمیزون الفقیر من الغنی فی الدور (جلاء القلوب علی هامش شرح شرعة الاسلام: ص۷۲) او بیوه صفحه وروسته لیکي الدور مع الغنی لایجوز (جلاء القلوب: ص۷۳)

او علامه شامی رحمه الله لیکي: یجمع الوارث عشرة رجال لیس فیهم غنی لقوله تعالیٰ انما الصدقات للفقراء والمساکین (منحة الخالق علی هامش بحر الرائق: 2/90) وایضا قال: والمنصوص علیه فی المذهب وعلیه العمل ان یجمع الوارث عشرة رجال لیس فیهم غنی ولا عبد ولا صبی ومجنون (رسائل ابن عابدین: 1/211)

علامه سید محمد یوسف بنوری نور الله مرقده داسې لیکي: ومن یاخذ (من الصدقات) مالیس له کمن یمنع ما علیه لأن کل واحد منهما یتعدی حدود الله فهما شریکان فی الاثم (معارف السنن: 5/256) صاحب جوهرة النیرة لیکي: وکما یحرم علیه (علی الغنی) القبول کذالک یحرم علی المتصدق الأعطاء اذا کان عالما بحاله یقینا او با کثر رایه (جوهرة النیرة: 2/166)

نمبر۵. په کوم مال سره چې دوره اسقاط کوي هغه به مستعار نه وي ولی چې مال مستعار د مستعیر ملک نه جوړیږي هغه مال اوس هم د معیر په ملک کې دی او د بل چا په ملک کې تصرف کول جائز نه دی ولی چې نبی کریم ﷺ فرمایي لایحل مال امرا الا بطیب نفس منه.

نمبر۶. فقیرته دي داوایي چې دا مال اوس ستا په ملک کې دی ته په دي کې هر قسم تصرف کولی شې البته په مړه د ترحم لپاره ته دا مال بیرته موږته هبه کړه موږ به یې بیا تاته درکړو تر څو د میت ذمه فارغه شي او که یې فقیرته سرنه کوو رخلاص نو دا دور صحیح نه دی لکه څرنګه چې علامه تقی الدین البرکوی رحمه الله لیکي: ثم یطلب مسکین صالح فیقال له انا نرید ان نعطیک ماة درهم لاسقاط الصلوة ولکن نسالک ان تهب لنا کما نسالک ان تهب لنا کلما قبضت وصارت ملکک کسائر املاکک حتی یتم الدور ثم یلقی فی یدک کملا بلا نقصان لتکون هبة ذالک المسکین علی علم ورضی فصح ثم یفعل ماقیل له (جلاء القلوب علی هامش شرح شرعة الاسلام: ص۷۰) او علامه ابن عابدین شامی رحمه الله لیکي: ویقبلها الفقیر ویقبضها ویعلم انها صارت ملکا له (رسائل ابن عابدین: 1/212)

نمبر۷. فقیرته د پیسو ورکولو په وخت کې به یې صرف د حیلې نیت نه وي بلکه د فقیر د مالک جوړولو عزم به وي لکه څرنګه چې علامه ابن عابدین شامی رحمه الله لیکي: ویجب الاحتراز من ان یلاحظ الوصی عند دفع الصرة للفقیر الهزل او الحیلة بل یجب ان یدفعها عازما علی تملیکها منه حقیقة لا تحیلا (رسائل ابن عابدین: 1/225)

نمبر۸. فقیرته دپیسوله ورکولوڅخه وروسته که فقیرله واپس کولوڅخه انکاروکړنوده لره داجائزده اوله ده څخه جبراواپس اخیستل جائزنه دي لکه څرنګه چې علامه شامی رحمه الله لیکي: ان الفقیر اذا ابی عن هبتها الی الوصی کان له ذالک ولایجبر علی الهبة (حواله بالا)

نمبر۹. فقیرته دي دومره مال نه ورکوي په کوم چې هغه غنی شي که نه نو دامکروه ده لکه څرنګه چې علامه تقی الدین البرکوی رحمه الله لیکي: الا انه لایعطی هذه الا فقیر مدیون او ذی عیال فان لم یوجد فللفقیرین حذرا من الکراهة قیاسا علی الزکاة (جلاء القلوب: ص ۷۲)

نمبر۱۰. په حیله اسقاط به اصرارنه کوي یعنی دسنتو، واجبویا فرضوپه شان به یې لازم نه ګڼي په دي وجه چې دوره اسقاط چې کله په پورته شرائطوبرابره وي بیاهم حیله ده اودحیلې حیثیت زیات ترزیات اباحت دی اودکوم مباح کارپه پرینبودلو سره ملامتیانشته اوکه کوم څوک تارک ملامتوي نودانبه ده چې دی ددي دوجوب اعتقادلري اودکوم مباح بلکه مستحب په باره کې دسنت یاوجوب اعتقادلرل جائزنه دي لکه څرنګه چې علامه سید محمد یوسف بنوری رحمه الله لیکي: ثم فی حدیث ابن مسعود رضی الله عنه دلیل علی ان المندوبات قد تنقلب مکروهات اذا رفعت عن رتبتها لان التیامن مستحب فی کل شئ ان من امور العبادة لکن لما خشی ابن مسعود رضی الله عنه ان یعتقدوا وجوبه اشار الی کراهته قاله ابن المنیر کما فی الفتح ومثله ذکره الطیبی وغیره من علماء الشافعیة والحنفیة (معارف السنن: ۳/۱۲۶) اوملاعلی قاری رحمه الله لیکي: وفیه من اصر علی امر مندوب وجعله عزما ولم یعمل بالرخصة فقد اصاب منه الشیطان من الاضلال فکیف من اصر علی بدعة او منکر (مرقات شرح مشکوة: ۳/۳۱)

اوعلامه شامی رحمه الله داسې لیکي: وسجدة الشکر مستحبة به یفتی لکنها تکره بعد الصلوة لأن الجهلة یعتقدونها سنة او واجبة وکل مباح یؤدی الیه فمکروه، قال ابن عابدین الشامی: الظاهر انها تحریمیة لانه یدخل فی الدین مالیس فیه (شامی: ۲/۱۲۰)

دالس شروطونه ددوراسقاط لپاره دي نوچیرته چې داشرائط وي نودوراسقاط مشروع دی اوکه له دي شرائطوڅخه یویاټول نه وو نودوراسقاط ممنوع اوناجائزدی، مګربنکاره خبره ده چې اوس وخت په مروج دوراسقاط کې تقریباداټول شرائط مفقوددي لهذا اویل صحیح دي چې مروج دوراسقاط مشروع نه دی بلکه دادمتعددوګناهونه مجموعه ده له همدي امله دوخت جید وعلماپه دي حیله سخت ردکوي دنمونې په ډول دحضرت قطب عالم مولانارشیداحمد ګنګوهی رحمه الله فتوی ملاحظه کړئ.

**فرمایي**: حیله اسقاط دمفلس لپاره علماووضع کړي وه اوس داحیله دملایانولپاره دیوڅوپیسو دحصول حیله مقرره شوي ده حق تعالی په نیت خبردی هلته حیله کارنه کوي دمفلس لپاره په شرط صحت دنیت دورنه څه عجبه ده چې مفیده دي وي که نه نو لغو اوحیله تحصیل دنیادنیه ده فقط والله اعلم رشید احمد عفی عنه فتوی رشیدیه.

زموږ په خواکې یومولوی صاحب دحیله اسقاط پراهمیت باندي مضمون لیکلی دی دنمونې په ډول دي مضمون څخه یواعتراض اودهغه ځواب نقل کوم له کوم څخه چې به ددي مضمون حقیقت واضح شي، لیکي: فان قلت اذا کانت دراهم الاسقاط کثیرة تبلغ النصاب اوتزید علیه فلما قبضها الفقیر صار غنیا فتجب علیه حجة الاسلام ان لم یحج وتجب علیه صدقة الفطر والاضحیة ان وجدوقت هذه الاشیاء وایضاتجب علیه نفقة الاقارب المحاویج ذوی الرحم المحرمین علیه وغیر ذالک مما یتعلق بالغناء؟ قلت: هذه الصور نادرة من اتفاق کثرة الدراهم ووجدان الوقت المذکور وان اتفقت فالاحوط ان تفرق الدراهم الکثیرة الی حصص تکون کل حصة ناقصة عن النصاب وتعطی الحصص الی انفار ثلثة مثلا فتدار علی المحاویج والفقراء هکذا ینبغی ان یفهم

المقام ليقع الخلاص عن طعن الفنجفيرين الطاعنين بانواع من الحيل والشبه الباطلة ليدحضوا الحق والله تعالى متم نوره ولو كره هؤلاء الفاسقون ولهذا التفريق نظير في الزكاة من ان اعطاء قدر النصاب في الزكوة للفقير مكروه قال في الدر المختار وكره اعطاء فقير نصابا او اكثر اه (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۲/۶۸ مطبع بيروت)

په مذكوره عبارت كې مولوى صاحب يو اعتراض نقل كړى دى چې په دوراسقاط كې چې كوم مال فقيرته وركول كيږي كه هغه دومره وو چې په هغه سره حج اداء كيداى شواى او موقع هم دحج وه نوپه پولو فقيرانو حج فرض كيږي او دعيدينو موقع وه نوصدقه فطراواضحيه واجيږي نوداخويې فقيران په يوه مشكل كې مبتلاء كړل ؟مولوى صاحب ځواب وركوي چې داصورتونه نادردي اوكه بالفرض داسې صورت پيښ شونوپيسې دي تقسيم كړي اودومره دي لږكړي په څومره چې فقيرغنى نه ګرځي په دي دول له دي مشكل څخه خلاصيداى شي .

مګردمولوى صاحب داځواب مناسب نه دى ولې چې اول خوداصورتونه نادرنه دي ولې چې هركال په دي مواقعو كې يقينامسلمان مركيږي اوپرده دمولوى صاحب په شان دخلګودفتوى له كبله دوراسقاط كيږي نوكوم چې هركال پيښيږي هغه څرنګه نادردى ؟دوهمه خبره داده چې كله چې داصورتونه پيښ شوى دي نودبې چاره مولوى صاحب په تجويز باندي چاعمل كړى دى ؟لهذاداصورتونه يقيناپيښيږي اوبې چاره عام خلګ ديوي حيلې له كبله دترک فرائضو مرتكب ګرځي . والله اعلم بالصواب .

## دسرخاكې بيان

ف:زموږپه خواكې داهم رواج دى چې له مرده سره څه خورماوي وغيره هديري ته وړي له تدفين څخه وروسته داخورماوي تدفين ته په راغليو خلګوتقسيموي دي په عرف كې سرخاكې ويل كيږي عام خلګ دادومره لازمي ګڼې ګوياد حق اوباطل معيارهمدادى كوم خلګ چې له دي څخه انكاركوي هغوته ديربدردوايې حال داچې په شريعت كې ددي هيڅ اصل نشته حضرت قطب علام مولانارشيد احمد ګنګوهى رحمه الله داديهوديانو اوهندوانو عادت بللى دى .لكه چې فرمايي له مرده سره توشه وړل دا ديهودواوهندوانوكفاروعادت دى ،من تشبه بقوم فهومنهم نوكه څوک دكافركوم رواج خپلوي نوهغه به له كفاروشمارل كيږي له مرده سره توشه وړل هيڅ كله په قرون ثلاثه كې ثابت نه دي بلكه داد كفارو فعل دى نوداعمل كول بدعت او ګناه ده بالكل صحيح نه ده نبى كريم ﷺ به په كوم كې چې لږ له كفاروسره مشابهت راتلوهغه به يې منع كاوو لكه چې احاديث له له دي اموروډک دي نودافعل بايد مردودا وګناه وګڼل شي اوترک كول يې واجب دى .فقط والله اعلم (فتاوى رشيديه :ص۱۴۴)

همداراز خلګ ددي عمل داسې التزام كوي ګويادا دتجهيز اوتكفين له فرائضو څخه دى حال داچې په مندوب امراصرار كول هم قبيح دي داخولاڅه چې په يومنكرامروي لكه څرنګه چې ملاعلى قارى رحمه الله ليكي وفيه من اصرعلى امرمندوب وجعله عزما ولم يعمل بالرخصة فقداصاب من الشيطان من الاضلال فكيف من اصرعلى بدعة اومنكر.(مرقات شرح مشكوة: ۳/۳۱)

ف: په ځينو علاقو کې دا هم رواج ده چې د مړه په دريمه ورځ د مساجدو امامان ،طالبان او عام ديندار خلک رابولوي د ختم قران کولو لپاره د ايصال ثواب ،په دي ورځ عام دعوت (ميلمستيا) هم کوي او امامانو او طالبانو ته څه پيسې هم ورکوي، دا فعل د څو وجوه له کبله مکروه او بدعت دی ولی چې په خير القرون کې د دي هيڅ ثبوت نشته .خلک د دي داسې اهتمام کوي چې په نه کونکيو باندي طعن او تشنيع کوي حال دا چې فقهاو دا مکروه ګڼلی دی علامه شامی رحمه الله ليکي .ويکره اتخاذ الطعام فی اليوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ونقل الطعام الی القبر فی المواسم واتخاذ الدعوة لقراة القرآن وجمع الصلحاء والقراء للختم او لقراة سورة الانعام او الاخلاص والحاصل ان اتخاذ الطعام عند قراة القرآن لاجل الاکل يکره (ردالمحتار:۲/۲۶۶) کذا فی الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۵۱۰،وکشف الاستار علی الدر المختار:۱/۱۲۶)

او علامة الهند مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله ليکي: وشيخ عبدالحق محدث دهلوی درشرح سفر السعادت ميفرمايند. وعادت نبود که برائ ميت درغير وقت نماز جمع شود وقرآن خوانند وختمات خوانند نه برسر ګور ونه غيران واين مجموع بدعت است ومکروه .(مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی :۱/۱۹۵)

همدا راز د قران د ويلو په موقع کې دعوت يا شيريني بندوبست کول يا پيسې ورکول د المعروف کالمشروط د قاعدي په بناء د ويونکو لپاره اجرت دی او د قران مجيد د تلاوت کولو اجرت اخيستونکی او ورکونکی دواړه ګنهګاردي نو پردي به د ثواب څرنګه اميد کيدای شي ؟او کله چې تلاوت کونکی ته پخپله ثواب نه ورکول کيږي نو هغه مړده ته څرنګه ايصال ثواب کولی شي .ځينې حضرات د دي مختلف تاويلات کوي مثلا وايي چې صاب دا اجرت نه دی بلکه د مړده قريبان خو د الله جل جلاله لپاره خيرات کوي او راتلونکی يې د الله جل جلاله لپاره تلاوت کوي مګر د دوئ دا تاويلات بې ځايه دي ،علامه شامی رحمه الله ليکي :ولولا الاجرة ماقرأ احد فی هذا الزمان بل جعلوا القران العظيم مکسبا ووسيلة الی جمع الدنيا انا لله وانا اليه راجعون (وبعدا سطر) لامعنی لهذه الوصية ولصلة القاری بقرآته لان هذا بمنزلة الاجرة والاجارة فی ذالک باطلة وهی بدعة ولم يفعلها احد من الخلفاء ...ولامعنی ايضا لصلة القاری لان ذالک يشبه استجار علی قراة القرآن وذالک باطل ولم يفعل ذالک احد من الخلفاء (ردالمحتار: ۵/۳۹)

وقال صاحب تنقيح الحامديه :اما الوصية بذالک فلامعنی لها ولامعنی ايضا لصلة القاری لان ذالک يشبه استجار علی قراة القران وذالک باطل ولم يفعل احد من الخلفاء ورأيت التصريح ببطلان الوصية بذالک فی عدة کتب (تنقيح الحامدية:۲/۱۳۸)

دايصال ثواب لپاره صحيح طريقه داده چې هرڅوک دي په ځانګړي توګه سره چې کوم نيک عمل د خپل ځان لپاره کوي مثلا نفل کوي تسبيحات کوي روژي نيسي يا حج وغيره کوي په هغه کې دي صرف دا نيت وکړي چې د دي ثواب دي فلانکی مړده ته ورسيږي نو کوم ثواب چې تا ته رسيد وهغه به دي مړده ته ورسيږي او تا ته به هم د دي ثواب ورسيږي. او د مالی صدقاتو د ثواب رسولو طريقه داده چې څه پيسې د خير په کوم کار کې مصرف کړي يا يې کوم فقير ته ورکړي او په هغه کې دا نيت وکړي چې د دي ثواب دي فلانکی مړده ته ورسيږي نو بس د دي ثواب هغه ته رسيږي .

ف: په هفته کې يوه ورځ هديري ته تلل په کار دي .د پنجشنبې ،جمعې ،هفتې او دوشنبې ورځې افضلې دي او چې هديري ته داخل شي داسې سلام دي کوي السلام عليکم دار قوم مؤمنين وانا ان شاء الله بکم لاحقون ونسئل الله لنا ولکم العافية .بيا دي د مړده د پښو له طرفه د مخ لور ته ودريږي او دعاء دي وکړي او که يې کښينتل غوښتل نو په

ژوندانه له مرده سره دتعلق مطابق دي نژدي يالري كښيني څومره چې ورته اسانه وو تلاوت دي وكړي بالخصوص دسورة بقرة له اول څخه ترمفلحون پوري ،اية الكرسي،امن الرسول ،سورة يسين ، سورة ملك تكاثر اوسورة اخلاص دولس يااوه يادري ځله ولولي اوايصال ثواب دي وكړي. (احسن الفتاوى :۴/۲۲۲)

## باب الشهيد

داباب دشهيد داحكامو په بيان كې دى

شهيد فعيل دمفعول په معنى دى شهيدته شهيدپه دي وجه ويل كيږي چې فرشتې دتكريم لپاره دده مرګ ته حاضريږي ،يادءته شهيدپه دي وجه ويل كيږي چې شهيد مشهودله بالجنة بالنص دى يعنى په نص كې دده دجنتي والى شاهدى وركړل شوي ده وياشهيد فعيل دشاهدپه معنى يعنى حاضرسره ده ولى چې شهيدهم ژوندى اودالله تعالى په حضوركې حاضراوموجودوي دشهيداحكام يې دمخصوص فضليت له كبله په مستقل باب كې ذكركړل نودادتخصيص بعدالتعميم له قبيلې څخه دى.

(۲۴۵)هومن قتله أهل الحرب والبغي وقطاع الطريق أو وجد في المعركة وبه أثر أو قتله مسلم ظلما ولم تجب بقتله دية (۴۴۶)فيكفن ويصلى عليه بلا غسل ويدفن بدمه وثيابه (۴۴۷)إلا ماليس من الكفن ويزاد وينقص

**ترجمه**:شهيدهغه دى كوم چې حربى كافرانو ،باغيانو ياغلوقتل كړى وي يادجنګ په ميدان كې پيداشي اوپردءاثروي يادى قتل كړى مسلمان په ظلم سره اونه وي واجب شوى دده له كبله ديت ،نوده ته به كفن وركول كيږي اولمونځ به وركول كيږي بې له غسله اودي دفن كړاى شي له وينواوجاموسره ، مګرهغه جامې چې دكفن له قبيلې څخه نه وي بزياتى دكړاى شي اوكمې دي كړاى شي .

**تشريح**:(۴۴۵)مصنف رحمه الله په دي عبارت كې دشهيداصطلاحى تعريف بيان كړى دى چې شهيدهغه دى كوم چې كافرانو ياباغيانو ياغلو مړكړى وي ياپه ميدان جنګ كې نعش پيداشي اوپه هغه دقتل اثروي يادءئې كوم مسلمان ظلماقتل كړي اودديې په عوض كې ديت نه وي واجب شوى بلكه قصاص واجب شوى وي.

**ف**:دمصنف رحمه الله دقول ولم تجب بقتله دية مطلب دادى چې ابتداء دده پر قاتل قصاص واجب وي مال واجب نه وي نوپه دي سره احتراز راغى له قتل خطاء څخه ولى چې په قتل خطاء كې پر قاتل قصاص نه بلكه مال واجبيږي لهذادقتل خطاء مقتول دنيوي شهيدنه دى.

**ف**:شهيدپردوه قسمه دى :نمبر۱.هغه شهيدكوم چې ددنيااواخرت دواړوپه اعتبارسره شهيدوي يعنى په دنياكې غسل نه وركول كيږى اوپه اخرت دءلره اجرعظيم وركول كيږي .نمبر۲.هغه شهيدكوم چې صرف په اخروى اعتبارسره شهيدوي يعنى په دنياكې دعامومرده ګانوحكم لري مګرپه اخرت كې ده ته هم ډيراجروركول كيږي .دلته مقصوددباليبان قسم اول دى مصنف رحمه الله هم داول قسم تعريف كړى دى.

**ف**:كه له ريل ګادي ياموټرڅخه ولويږي اومړشي ياپه دوئ كې مړشي ياله يوشي سره ټكروكړي نوداشهادت صغرى دى دشهداودنيوى احكام پردوئ نه جاري كيږي ليكن په اخرت فى الجملة په شهداوكې حساب كيږي.(احسن الفتاوى :۴/۲۵۴)

ف: نن صبا په لويو لويو ښارونو او غونډو کې دماکې کيږي په کوموکې چې بې شماره بې ګناه مسلمانان مړه کيږي داسې مقتولين په دنيوي او اخروي دواړو اعتبارونو سره شهيد ګڼل کيږي لهذا دوئ ته به غسل نه ورکول کيږي. (حقانية: ۳/۴۷۴)

(۴۴۶) يعني شهيدته به کفن ورکول کيږي ولی چې کفن دبنوادم دمرده ګانوسنت دي او دشهيد دجنازي لمونځ به اداء کيږي ﴿لحديث عقبة بن عامر ﷺ ان رسول الله ﷺ خرج يوما فصلّى على أهل أحد صلاته على الميت ثم انصرف إلى المنبر فقال اني فرط لكم وانا شهيد عليكم﴾ (يعني نبی کريم ﷺ يوه ورځ له مديني منوري څخه دباندي ووتی بيايې داحد په شهيدانو دجنازي لمونځ اداء کړ بيا دمنبرلورته راغی اوويې فرمايل زماستاسې پيش خيمه يم اوپرتاسې شاهديم ) مګرشهيدته بالاتفاق غسل نه ورکول کيږي ولی چې شهيدمذکورداحد دشهيدانو په حکم کې دی او داحد دشهيدانو په باره کې نبی کريم ﷺ فرمايلي وو ﴿زملوهم بكلومهم ودمائهم ولا تغسلوهم﴾ (يعني دوئ ونغاړئ ددوئ له زخمونواووينوسره اودوئ ته غسل مه ورکوئ )لهذا مذکورشهيدته به هم غسل نه ورکول کيږي.

ف: دامام شافعی رحمه الله په نزد دشهيد دجنازي لمونځ هم نشته ولی چې دجنازي لمونځ دعاء ده اوشهيدله ګناهونوڅخه پاک دی په دي وجه ددعاء ضرورت نشته. احناف ځواب ورکوي چې له ګناه څه پاک هم له دعاء څخه مستغنی نه دی لکه چې پيغمبر ﷺ له دعاء څخه مستغنی نه دی.

(۴۴۷) يعني شهيدبه دده له وينواوجامو سره دفن کيږي له ده څخه به دده وينې نه پريمنځل کيږي اونه به له ده څخه دده جامې ويستل کيږي لماروينا. ليکن کوم شيان چې دکفن له جنس څخه نه دي هغه به ورڅخه ويستل کيږي نوله شهيدڅخه به پوستين، موزي، کوټ، واسکټ او اسلحه لري کيږي ﴿لحديث ابن عباس ﷺ قال امر رسول الله ﷺ بقتلى احدان ينزع عنهم الحديدوالجلود﴾ (يعني نبی کريم ﷺ داحد دشهيدانو په باره کې وفرمايل چې له دوئ څخه اوسپينې اوپوستکې شيان لري کړي )اودشهيد پربدن که دکفن له عددمسنون څخه کمې جامې وي نوپه هغه کې دي اضافه وکړل شي اوعددمسنون دي پوره کړای شي اوکه له عددمسنون څخه زياتې جامې وي نوکمې دي کړي اوعددمسنون دي پريږدي.

(۳۴۸) ويغسل ان قتل جنبا او صبيا (۳۴۹) او ارتث بأن أكل او شرب او نام او تداوى او مضى عليه وقت صلاة وهو يعقل او نقل من المعركة او أوصى (۳۵۰) او قتل في المصر ولم يعلم أنه قتل بحديدة ظلما (۳۵۱) او قتل بحد او قود (۳۵۲) لا لبغي وقطع طريق

توجمه: او غسل دي ورکړل شي که مړکړای شو دجنابت په حال کې يا دکوچنی والی په حال کې. يا ده څه نفعه حاصله کړه په دي شان چې خوراک يې وکړ يا يې څښل وکړل يا يې دوا وکړه يا تير شو دلمانځه وخت په داسې حال کې چې دی په هوش کې وو يا منتقل کړل شو دجنګ له ميدان څخه يا ده وصيت وکړ، يا قتل کړل شو په ښارکې او دا نه وه معلومه چې دی قتل کړل شوی دی په توره سره ظلما، يا قتل کړل شوی وو په حد يا قصاص کې، نه دا چې دبغاوت يالارشکونی په سبب سره.

تشريح: (۴۴۸) يعني که جنب مسلمان (ياله حائضې ياله نفاسې څخه يو) شهيد شونو دصاحبينو رحمهما الله په نزد دوئ ته هم غسل نه ورکول کيږي ولی چې دنبی کريم ﷺ قول ﴿ زملوهم بكلومهم ودمائهم ولا تغسلوهم ﴾ (يعني دوئ ونغاړئ ددوئ له زخمونواووينوسره اودوئ ته غسل مه ورکوئ )مطلق دی دداي هيڅ

تفصيل نشته چې شهيد به جنب نه وي يا به حائضه نه وي ،دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد به جنبي ته غسل ورکول کيږي ولې چې دامام صاحب رحمه الله په نزد د سقوط غسل لپاره دشهيد پاک والی او مکلف والی شرط دی ولې چې حضرت حنظله بن ابی عامر رضی الله عنه دجنابت په حال کې شهيد شونو فرشتو ده ته غسل ورکړنبی کريم ﷺ ددې دکورله والو څخه په دې باره کې پوښتنه وکړه نو هغوئ وويل چې هغه خود جنابت په حال کې له کور څخه وتلی وو ،همداراز په دې وجه هم چې شهادت خوله هغه نجاست څخه مانع دی کوم چې دمرګ له وجې دمرده په بدن کې حلول کوي ليکن که له وړاندې څخه دجنابت وغيره له وجې غسل واجب وي نو هغه نه ختموي ،همداوجه ده چې که دشهيد په جامو که له مخکې څخه نجاست لګيدلی وو نو دهغه پريمنځل ضروري دی ولې چې شهادت هغه لره رافع نه دی ليکن دده دبدن وينه پريمنځل ضروري نه دی لهذا جنبي وغيره ته به غسل ورکول کيږي .

ف:دامام صاحب قول راجح دی : كماقال الشيخ عبدالحكيم الشاه ولي كوتی(قوله واذا استشهد الجنب غسل )وهذا هو ظاهر الرواية عن الامام ابي حنيفة رحمه الله وهو الماخوذ وعليه الفتوى واختاره اصحاب المتون ومشى عليه في الكافي والتبيين ونور الايضاح وشرنبلالية وبحر الرائق(هامش الهداية:۱۶۶/۱)

همداشان که کوچنی شهيد شونو هم دصاحبينو په نزد غسل نه ورکول کيږي ،دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد غسل ورکول کيږي ،دصاحبينو دليل دادی چې دشهيد غسل له دې وجې ساقط دی ترڅو دده دمظلوميت اثرباقي پاته شي نو شهيد لره غسل نه ورکول دده اکرام له مخې دی او دکوچنی مظلوميت زيات دی لهذا کوچنی ددې اکرام ډير مستحق دی ،دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې داحد دشهيدانو په حق کې توره له غسل څخه کافي شوه ولې چې توره ګناهونه پاکوي او په کوچنی څه ګناه نشته چې توره هغه پاکه کړي نو کوچنی داحد دشهيدانو په معنی نه دی لهذا دکوچنی غسل هم ناساقطيږي ،په دې مسئله کې هم دامام صاحب قول راجح دی .

(۴۴۹)قوله او ارتث بان اكل اوشرب الخ اي يغسل من ارتث بان اكل اوشرب الخ ،يعنی همداشان هغه مقتول ته هم غسل ورکول کيږي دکوپه مره کيدلو کې چې وخت ولګيږي ،دارتثاث معنی ده زوړوالی نو مقتول في سبيل الله که له زخمي کيدلو څخه وروسته اوله مره کيدلو څخه وړاندې دږوند څخه څه نفع حاصله کړه نو ويل کيږي چې داشهيد زوړشو اوځرنګه چې دمنافع ږوند دحاصلولوله کبله دظلم اثرهم کم شوله دې وجې داداحد دشهيدانو په حکم کې پاته نشو لهذا دې شهيد ته به غسل ورکول کيږي ،همداشان حضرت عمر رضی الله عنه په زخمي حالت کې کورته راوړل شو او تردوو ورځوپورې ږوندی وو او بيايې انتقا ل وکړله دې وجې ده ته غسل ورکول شو په داسې حال کې چې حضرت عثمان رضی الله عنه له ږوند څخه دڅه فائدې داخيستلو موقع په لاس ورنه غله دې وجې ده ته غسل ورنه کړل شو ،دشهادت حکم ختمونکی ارتثاث دادی چې څه وخوري يا څه وڅښي يا ويده شي يا دده علاج معالجه وشي يا هغه تر دومره وخت پورې ږوندی پاته شي چې پرده دهوش په حالت کې ديوه لمانځه وخت تيرشي يا له ميدان جنګ څخه ږوندی نقل کړای شي يا هغه څه وصيت وکړي نو په دې ټولو صورتونو کې ځرنګه چې ده له ږوند څخه څه نفع حاصله کړه له دې وجې دی داحد دشهيدانو په معنی کې پاتې نشو لهذا ده ته به غسل ورکول کيږي .

ف:البته که داسې شخص داخرت داموروپه باره کې څه وصيت وکړنو دامام محمد رحمه الله په نزد به دي کسر ته غسل نه ورکول کيږي اوهمدا قول مفتی به هم دی لماقال العلامة الحصکفی رحمه الله :وان اوصی باموالاخرة لايغير مرتا عندمحمد وهوالاصح لانه من احکام الاموات.(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۱/٦٤٢)

(۴۵۰)قوله اوقتل فی المصر الخ ای ويغسل ان قتل فی المصر ،يعنی همدا شان که کوم مقتول په مصر کې مړکړل شوی وو مگر دامعلومه نه وي چې دی په اسلحه سره ظلما وړل شوی دی نوده ته به هم غسل ورکول کيږي ولی چې دده دقتل له وجې ديت واجبيږي په کوم سره چې دظلم اثرکميږي لهذا دادا حد دشهيدانو په معنی کې نه دی.

(۴۵۱)قوله اوقتل بحداوقود ای ويغسل ان قتل بحداوقود ،يعنی که کوم کس په حد يا قصاص کې قتل شونوده ته به غسل هم ورکول کيږي اوپرده به دجنازي لمونځ هم اداء کيږي ولی چې پرده حد اوقصاص واجب وو دي حق واجب داداء کولو لپاره ده خپله روح تسليم کړه په داسې حال کې چې داحد شهيدانو صرف دالله ﷻ دخوشحالی لپاره خپله روح تسليم کړي وه لهذا دادا حد دشهيدانو په حکم کې نه دی له دي وجې به ده ته هم غسل ورکول کيږي .

(۴۵۲)قوله لالبغی ای لايغسل من قتل لبغی ،يعنی که کوم باغی يا ډاکو وړل شونوده ته به غسل نه ورکول کيږ زموږ په نزد دده دجنازي لمونځ هم نه اداء کيږي حال داچې دامام شافعی رحمه الله په نزد دده دجنازي لمونځ شته ،دامام شافعی رحمه الله دليل دادی چې باغی اوډاکومؤمن دی نوداهغه شخص په شان دی کوم چې په رجم يا قصاص کې وړل شوی وي اوپه رجم يا قصاص کې دقتل شوی دجنازي لمونځ شته نودډاکواوباغی دجنازي لمونځ به هم اداءکيږي ،زموږ دليل دادی چې حضرت علی رضي الله عنه خوارجوته نه غسل ورکړی وو اونه يې ددوئ دجنازي لمونځ اداء کړی وو اوخوارج باغيان وو حضرت علی رضي الله عنه ته وويل شول اهم کفار؟(ايادوئ کافران دی ؟)نوده رضي الله عنه وفرمايل ولکنهم اخواننا بغوا علينا(يادزموږ مسلمانان وړونه دي پرموږ يې بغاوت کړی دی )نودادوئ لپاره زجراوعقوبت دی مگرشرط دادی چې دجنگ په دوران کې به وژل شوي وي که وروسته ووژل شول نودوئ ته به غسل ورکول کيږ ي اوپردوئ به دجنازي لمونځ اداءکيږي .

## باب الصلاة في الكعبة

داباب په کعبه کې دلمونځ اداءکولو په بيان کې دی

ددي باب له ماقبل سره مناسبت دادی چې لکه څرنگه چې شهيد کيدل له عذاب څخه دمامون کيدلو سبب دی همداشان په کعبه کې داخليدل هم دامن سبب دی لقوله تعالی ﴿ من دخله کان امنا ﴾اويادامناسبت دی چې په کعبه کې لمونځ کونکی من وجه مستقبل الکعبة دی اومن وجه مستدبرالکعبة دی همداشان شهيدمن وجه (عندالله )ژوندی دی اومن وجه (عندالناس )مړه دی نوپه دواړوکې مناسبت دادی چې په هريوه کې دوه جهته شته .

کعبة دبیت الحرام نوم دی لغوی معنی یې ثابت اولوړوالی دی له دې څخه کعب فی الرجل او کعوب الرمح او جاریه کاعب ماخوذ دي،زموږ په نزد کعبه دمعین ځای نوم دی که تعمیروي که نه وي او دامام شافعي رحمه الله په نزد کعبه دځای او تعمیر دواړو نوم دی.

(۴۵۳)صح فرض ونفل فیها (۴۵۴)وفوقها (۴۵۵)ومن جعل ظهره الی ظهر امامه فیها صح والی وجهه لا (۴۵۶)وان تحلقوا حولها صح لمن هو اقرب الیها من الامام ان لم یکن فی جانبه

**ترجمه**:صحیح ده فرض او نفل لمونځ په کعبه کې،او دهغې پرسرباندې،او چاکه خپله شاد امام دشا لور ته وګرځوله نو دا صحیح دی او دامام دمخ لورته نه ده صحیح،او که خلګو حلقه جوړه کړه دکعبې چارپیره نو صحیح دی دهغه لمونځ کوم چې کعبې ته ترامام ډیر نژدې دی په دې شرط چې دامام په طرف کې به نه وي

**تشریح**:(۴۵۳)زموږ په نزد په کعبه مکرمه کې فرض لمونځ او نفل لمونځ دواړه جائز دي ولې چې دلمانځه ټول شرائط پوره دي حتی چې استقبال قبله هم شته له دې وجې چې دکعبې استیعاب شرط نه دی بلکه دکعبې مکرمې له اجزاو څخه دیوه جز استقبال شرط دی کوم چې موجود دی لهذا دکعبې دننه لمونځ جائز دی دامام مالک رحمه الله په نزد نفل جائز دي فرض جائز نه دي.

**ف**:دامام شافعي رحمه الله په نزد په کعبه کې دننه لمونځ اداء کول جائز نه دي ولې چې په کعبه کې دننه دلمانځه اداء کولو په صورت کې من وجه استدبار کعبه کیږي نو احتیاطاً دا مفسد نماز دی.احناف ځواب ورکوي چې هغه استدبار مفسد دی په کوم کې چې استقبال کعبه نه وي په داسې حال کې چې په کعبه مکرمه کې دلمانځه داداء کولو په صورت کې استقبال شته،همدا راز له حضرت بلال رضي الله عنه څخه مروی ده چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم په کعبه کې دننه لمونځ اداء کړی دی.

(۴۵۴)قوله وفوقها ای صح علی سطح الکعبة ایضا،یعنی دکعبې مکرمې پربام باندې هم لمونځ اداء کول صحیح دی که څه هم دده مخته ستره نه وي ولې چې استقبال قبله شته له دې وجې چې کعبه دتعمیر نوم نه دی بلکه دکعبې له عمارت څخه بیاتر اسمان پورې دفضاء نوم کعبه ده له دې وجې دکعبې پرچت دلمانځه داداء کولو په صورت کې هم استقبال کعبه متحقق دی.

**ف**:البته دکعبې پربام باندې لمونځ اداء کول مکروه دي ولې چې په دې کې ترک تعظیم دی کما فی شرح التنویر:(یصح فرض ونفل فیها وفوقها)ولو بلاسترة لان القبلة عندنا هی العرصة والهواء الی عنان السماء (وان کره الثانی)للنهی وترک التعظیم (الدر المختار علی هامش رد المحتار:۲۷۴/۱).

(۴۵۵)دکعبې دننه دلمانځه داداء کولو په صورت کې که چاخپله شاد امام دشا طرف ته وګرځوله نو دده لمونځ صحیح دی.په کعبه کې دننه په جماعت سره دلمانځه داداء کولو دري صورتونه دي (۱)دمقتدی شاد امام دشا طرف ته وي په دې صورت کې دمقتدی لمونځ بلا کراهته صحیح دی ولې چې په دې صورت کې استقبال کعبه متحقق دی.(۲)دمقتدی شاد امام دمخ طرف ته وي په دې صورت کې دمقتدی لمونځ صحیح نه دی ولې چې په دې صورت کې مقتدی له امام څخه مخکې دی (۳)دمقتدی مخ دامام دمخ طرف ته وي دا صورت دبتانو دعبادت کونکو سره دمشابهت له وجه مکروه دی.

(۴۵۶)یعنی که امام له کعبې څخه دباندې په مسجد حرام کې جمع ورکوله اوخلکو دامام اقتدا وکړه اودکعبې مکرمې چارچاپیره یې صفونه جوړکړل نودامام دطرف څخه ماسوا په دانوروطرفو کې له مقتدی دامام په نسبت کعبې ته ډیرقریب وو نوددې مقتدیانولمونځ جائزدی لیکن په کوم طرف کې چې امام دی که په همدغه طرف کې مقتدی له امام څخه کعبې ته ډیرقریب وو نودده لمونځ صحیح نه دی ولې چې دمقتدی له امام څخه مقدم یامؤخرکیدل داتحادجهت په صورت کې ښکاره کیږي لهذا په اول صورت کې مقتدی له امام څخه مقدم نه دی په دې وجه دده لمونځ صحیح دی اوپه دوهم صورت کې مقتدی له امام څخه مقدم دی له دې وجې دده لمونځ جائزنه دی.

## كتاب الزكاة

داکتاب دزکوة په بیان کې دی

زکوة په لغت کې دنماء (زیاتوالی )په معنی دی ویل کیږي زکاالزرع کله چې هغه لوی شي .زکوة هم ځکه چې دزیاتوالی سبب دی چې په دنیاکې الله تعالی دمزکی مال ورډیره وي اوپه اخرت کې ثواب ورکوي .همداشان زکوة دطهارت په معنی هم راځي ولې چې په زکوة اداء کولوسره مزکی له گناه څخه پاکیږي،اوشرعاًدمخصوص مال دمخصوص جزء مخصوص شخص صرف دالله تعالی لپاره مالک جوړولوته زکوة ویل کیږي،زکوة په دوهم هجری کال کې له روژې څخه مخکې فرض شوی دی.

مناسب خوداوو چې له کتاب الصلوة وروسته یې کتاب الصوم ذکرکړی وای ولې چې صلوة اوصوم دواړه بدني عبادتونه دي لیکن دکتاب الله ﷻ اوحدیث رسول ﷺ داقتداء په وجه یې له کتاب الصلوة څخه وروسته کتاب الزکوة ذکرکړ،دکتاب الله اقتداء په دې شان سره وشوه چې دالله تعالی په ارشاد ﴿اقیموا الصلوة واتوا الزکوة ﴾(اوقائم کړی تاسې لمونځ اواداء کړئ زکوة )کې له صلوة سره متصل دزکوة یادونه شوی دی ،اودحدیث رسول اقتداء په داسې شان سره وشوه چې دنبی کریم ﷺ په قول ﴿بنی الاسلام علی خمس شهادة ان لااله الاالله وان محمدارسول الله واقام الصلوة وایتاء الزکوة الخ ﴾(یعنی داسلام بیناد په پنځو شیانو قائم کړل شوی دی یوددې حقیقت گواهی ورکول چې له الله ﷻ څخه ماسوا کوم اله نشته اومحمد ﷺ دده بنده اورسول دی دوهم لمونځ قائمول دریم زکوة ورکول الخ )کې له صلوة څخه وروسته متصل دزکوة ذکردی.

دزکوة دفرضیت دري دلائل دي /نمبر۱. کتاب الله ،دالله تعالی ارشاددی ﴿ وآتوا الزكاة ﴾ (زکوة اداءکړئ)، نمبر۲.دنبی کریم ﷺ قول دی﴿ ادوازکوة اموالکم ﴾(دخپلو مالونو زکوة اداءکړئ )نمبر۳.دریم دلیل اجماع امت ده چې دنبی کریم ﷺ له زمانې څخه ترننه پورې دټول امت دزکوة په فرضیت باندې اجماع ده.

**الحکمة**:ان اداء الزکوة من باب اعانة الضعیف واغاثة الملهوف والقدار العاجز وتقویته علی اداء مافترضه الله عز وجل علیه من التوحید والعبادات والوسیلة الی اداء المفروض ،والثانی ان الزکوة تطهرنفس المؤدی من انجاس الذنوب وتزکی اخلاقه بتخلق الجود والکرم وترک الشح والضن اذالانفس مجبولة علی الضن بالمال فتتعود السماحة وترتاح لاداء الامانات وایصال الحقوق الی مستحقیها ،والثالث ان الله سبحانه وتعالی انعم علی الاغنیاء وفضلهم بصنوف النعمة والاموال الفاضلة عن الحوائج الاصلیة وخصهم بها فیتنعمون ویتلذذون بلذیذ العیش وشکر النعمة فرض عقلاوشرعاًواداء الزکوة الی الفقیر من باب شکر النعمة فکان فرضا(حکمة التشریع)

(۱) هي تمليك المال من فقير مسلم غير هاشمي ولا مولاه بشرط قطع المنفعة عن المملك من كل وجه لله تعالى (۲) وشرط وجوبها العقل والبلوغ والإسلام والحرية وملك نصاب حولي فارغ عن الدين وحاجته الأصلية نام ولو تقديرا (۳) وشرط أدائها نية مقارنة للأداء أو لعزل ما وجب أو تصدق بكله

**ترجمه**: زكوة مالک جوړول دي د مال مسلمان فقير لره كوم چې هاشمي نه وي او نه د هاشمي غلام وي په دي شرط چې د الله تعالى لپاره د مالک منفعت له مال څخه هر قسم منقطع وي. او د وجوب زكوة شرط عقل او بلوغ او اسلام او ازادي او د داسې مال مالک والى دى په كوم چې كال تير شوى وي. له قرض او د ده له حاجت اصليه څخه فارغ وي. مال زياتيدونكى وي كه څه هم تقديرا وي. او د اداء د زكوة شرط داسې نيت دى كوم چې له اداء سره يا د مقدار واجب له جلاكولو سره مقارن وي يا ټول مال صدقه كړي.

**تشريح**: (۱) مصنف رحمه الله د زكوة شرعي تعريف كړى دى چې محض د الله تعالى د رضا لپاره بې له كوم عوض څخه مسلمان فقير د مال مالک جوړولو ته زكوة ويل كيږي په دى شرط چې هغه فقير به هاشمي نه وي (له هاشميانو څخه مراد هغه دي كوم چې بنوهاشم ته منسوب وي يعنى ال على رضي الله عنه. ال عباس رضي الله عنه. ال عقيل رضي الله عنه. او ال حارث بن عبد المطلب) هاشميانو ته زكوة وركول په دي وجه نا ئزدي چې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد دى ﴿ان هذه الصدقات انما هي اوساخ الناس وانها لاتحل لمحمد ولا لآل محمد﴾ (يعنى صدقې د خلكو خيري دي او د ا د محمد صلى الله عليه وسلم او د آل محمد صلى الله عليه وسلم لپاره حلال نه دي) او دا هم شرط دى چې فقير به د هاشميانو ازاد كړاى شوى غلام نه وي ولى چې د بنوهاشم ازاد كړل شوى غلام هم د زكوة په حرمت كې د بنوهاشمو په حكم كې دى ﴿لقوله صلى الله عليه وسلم مولى القوم من انفسهم وانا لاتحل لنا الصدقة﴾ (يعنى د كوم قوم مولى هم د هغه قوم شخص بلل كيږي او زموږ لپاره صدقه حلاله نه ده) او دا هم شرط ده چې د مال منفعت به په ګلى ډول سره له مالک څخه منقطع كيږي. په دي قيد سره احترازدى له دي صورت څخه چې مزكى خپلو اصولو. فرعو يا خپلې ښځې ته زكوة وركړي ځكه چې په دي صورتونو كې د مالک منفعت په ګلى ډول سره نه منقطع كيږي. مصنف رحمه الله زكوة ته واجب مجازاً ويلى دى ځكه چې زكوة په دليل قطعي سره ثابت دى لهذا بايد فرض ورته ويل شوى واى.

ف: زكوة. عشر. صدقه فطر او قرباني پوستكي د امامت په اجرت كې مقررول شرعاً جائزنه دي او نه په دي سره زكوة اداء كيږي. د امام لپاره بايد پوره تنخوا جلا مقرره شي البته له تنخوا اخيستلو څخه وروسته كه بيا هم امام صاحب نصاب نه وو نو ده ته زكوة. صدقه فطر. عشر او قرباني پوستكي وغيره ټول وركولاى شي او د دې له امامت سره هيڅ تعلق نشته. (هنديه: ۱/۱۹۵ فتاوى عثماني: ۲/۱۵۷)

(۲) د وجوب زكوة لپاره څه شرطونه دي. نمبر۱. زكوة پر عاقل فرض دى پر مجنون فرض نه دى. /نمبر۲. زكوة پر بالغ فرض دى پر نابالغ نه. د دي دوو شرطونه وجه دا ده چې زكوة يو عبادت دى او كوم شى چې عبادت وي هغه بغيرله اختيار څخه نه اداء كيږي په دي وجه چې عبادت د ابتلاء او امتحان نوم دى او د امتحان معنى بغيرله اختيار څخه تحقق نه لري په داسې حال كې چې په مجنون او نابالغ كې عقل او پوهه نشته په دي وجه دوئ لره اختيار هم نشته او كله چې اختيار نه وي نو د زكوة اداء له دوئ څخه نشي كيداى نو فرض هم نه ده. /نمبر۳. زكوة پر مسلمان فرض دى پر غير مسلمان نه ولى چې اسلام د ټولو عباداتو د صحت لپاره شرط دى له كافر څخه يو عبادت هم نشي متحقق كيداى. /نمبر۴. زكوة په ازاد فرض دى په غلام

اومكاتب فرض نه دى په دي وجه چې زكوة پرملک وي اوكامل ملكيت په ازادي سره متحقق كيږي له غلامي اوكتابت سره نه څكه چې غلام خوبالكل دهيڅ شي مالک نه دى اومكاتب كه څه هم مالک وي مګرملكيت يې ناقص وي لهذاپرغلام اومكاتب باندي زكوة فرض نه دى .

/نمبر۵. دزكوة دفرضيت لپاره دقدرنصاب (په لغت كې نصاب داصل په معنى دى اوپه شريعت كې دمال، اسبابو او حيوانانودهغه مقدارنوم دى پركوم چې زكوة واجبيږي )مالک والى شرط دى لقوله ﷺ ﴿ليس فيمادون خمس اواق صدقة وليس فيمادون خمس ذودصدقة وليس فيمادون خمسة اوسق صدقة﴾(يعنى له پنځو اوقيو څخه په كم كې زكوة نشته اوله پنځواوشانو څخه په كموكې زكوة نشته اوله پنځووسقو څخه په كموكې زكوة نشته )نوڅرنګه چې نبى كريم ﷺ دزكوة سبب په مقدارسره مقدركړى دى نوپه دي وجه فقهاودزكوة دوجوب لپاره دمقدارنصاب مالک والى شرط ګرځولى دى .

ف :دزكوة دوجوب لپاره شخصي ملكيت ضروري دى په دي وجه دمدارسوياخيريه ادارو په پيسوله حولان حول سره سره زكوة نه واجبيږي .(حقانيه :۴/۶۸)

نمبر۶. دزكوة دفرضيت لپاره حولان حول (يعنى پرمال دكال تيريدل )شرط دى لقوله ﷺ لازكوة حتى يحول عليه الحول (يعنى په مال كې زكوة نشته ترڅوچې پرهغه كال تيرنشي ).

**الالغاز** :اى نصاب حولى فارغ عن الدين ولازكوة فيه؟

**فقل** .المهرقبل القبض (الاشباه والنظائر).

/نمبر۷. همداشان داهم شرط دى چې نصاب به له دين (پور)اوحاجت اصلي څخه فارغ وي كه پرچادومره قرض باندي وو چې دده ټول مال لره محيط(يعني ټول مال يې په پوركې ختميدو) وو يامال له قرض څخه زيات وو مګرهغه زائدبقدرنصاب نه وو نوپرده زكوة فرض نه دى ولى چې دمديون مال دده په حاجت اصلى سره مشغول دى لهذادامال معدوم شمارل كيږي اوكه له قرض څخه زيات مال بقدرنصاب وو نوپه دي زيات مال كې زكوة واجب دى ولى چې داله حاجت اصلى څخه فارغ دى ،حاجت اصلى هغه ته ويل كيږي چې په ده سره انسانى هلاكت اوتكليف ختميږي ،نوداوسيدلوپه كورنو ،دبدن په جامو ،دكورپه سامان ،سوارلي په حيوانانو ، دخدمت په غلامانو ،الات صنعت وحرفت (مثلاد حلوائى ديګونه .دنجارى سامان)اوداستعمال په اسلحه كې زكوة نشته ولى چې داشيان په حاجت اصلى كې مشغول دى ./نمبر۸. [illegible] داهم شرط دى چې مال به زياتيدونكى وي ولى چې دزكوة سبب زياتيدونكى مال دى كه حقيقةً زياتيدونكى وي اوكه تقديراً .حقيقةً زياتوالى كله په توالداو تناسل سره وي لكه په حيوانانوكې اوكله په تجارت سره وي لكه :تجارت په منونوكې .اوتقديرا زياتوالى داده چې زياتوالى ممكن وي چې مال دمالک په لاس كې وي يادهغه دنائب په لاس كې وي .

ف :نوپه مال ضمار(مال ضمارهغه مال دى چې دقيام ملک سره په هغه انتفاع ممكنه نه وي )كې زكوة واجب نه دى مثلاً تښتيدلى غلام اوداسې مغصوب مال چې پرهغه كوم ګواه نه وي لمافي شرح التنوير:لازكوة في مال مفقود وساقط في بحر ومغصوب لابينة عليه فلوله بينة تجب لما مضى (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار: ۲/۱۰ )

(۳)یعنی دزکوة داداء کولو شرط دزکوة په نیت سره دمال ورکول ... نه دي وجې چې زکوة اداء کول عبادت دی او دعبادت لپاره نیت شرط دی ،که نیت له اداء سره متصل وي نو هم جائزدی او که دټول مال حساب وکړي دزکوة چې څومره مقدار جوړېږي هغه دزکوة په نیت سره له خپله مال څخه جلاکړي نودانیت هم کافي دی ،اصل خودادی چې نیت له اداء سره متصل شي لیکن کله انسان په متفرقو وختونو کې متفرقو خلګوته زکوة ورکوي نو که هرځل نیت ضروري وګرځول شي نوداشخص به په حرج کې مبتلا ،شي لهذادفع حرج لپاره دمال زکوة نه خپله ماله څخه دجلاکولو دوخت په نیت باندي اکتفاء شوی ده ،همداشان که چاخپل ټول مال صدقه کړحال داچې دزکوة نیت یې نه وکړی نو استحساناًفرض زکوة ساقطیږي ولی چې واجب خوپه دي مال کې یوجزء دی او هغه په دي کې متعین دی لهذادهغه دمتعین کولو ضرورت نشته، اما دزکوة نیت بې شکه چې شرط دی کوم چې دلته نشته مګرځنګه چې داصل عبادت نیت شرط دی ترڅو په عبادت او عادت کې فرق وشي او هغه موجود شوولی چې زمورخبره په هغه صورت کې ده چې ټول مال کوم فقیرته ورکړي اوله هغه څخه دالله تعالی رضامندی حاصلول مقصود وي له دي څخه علاوه دفرض زکوة نیت کول ضروري نه دي ځکه چې ددي ضرورت دتعین لپاره دی حال داچې نصاب زکوة متعین دی .

## بَابُ صَدَقَةِ السَّوَائِمِ

داباب دحیوانانو دزکوة په بیان کې دی

مصنف رحمه الله دمالونو دزکوة دتفصیل پیل دحیواناتو دزکوة په بیان سره وکړاو په څارویو کې یې هم داوښانو په زکوة شروع وکړه وجه داده چې نبی کریم ﷺ چې دزکوة په سلسله کې کوم خط تحریرفرمایلې وو په هغه کې ترټولو مخکې داوښانو دزکوة بیان دی نومصنف رحمه الله دنبی کریم ﷺ دخط اتباع کړي ده،همداشان دعربو په نزداوښ په هغه زمانه کې دیراهم اواشرف مال ګڼل کیده په دي وجه یې داوښانو دزکوة بیان مخته کړ.

(۳)هِيَ الَّتِي تَكْتَفِي بِالرَّعْيِ فِي أَكْثَرِ السَّنَةِ(۵) وَيَجِبُ فِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ إِبِلًا بِنْتُ مَخَاضٍ (۶) وَفِيمَا دُونَهَا فِي كُلِّ خَمْسٍ شَاةٌ(۷) وَفِي سِتٍّ وَثَلَاثِينَ بِنْتُ لَبُونٍ (۸) وَفِي سِتٍّ وَأَرْبَعِينَ حِقَّةٌ(۹) وَفِي إِحْدَى وَسِتِّينَ جَذَعَةٌ(۱۰) وَفِي سِتٍّ وَسَبْعِينَ بِنْتَا لَبُونٍ وَفِي إِحْدَى وَتِسْعِينَ حِقَّتَانِ إِلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ

**ترجمه** :سوائم هغه دي کوم چې ګذاره کوي په اکثر دکال کې په دباندې څریدلو باندي ،او واجب دی په پنځه ویشت اوښانو کې یو بنت مخاض ،اوله دي څخه په کمو کې په هرو پنځو کې یوه پسه دی ،او په شپږدیرشو کې بنت لبون دی ،او په شپږ څلویښتو کې یوه حقه ده ،او په یوشپیته کې یوه جذعه ده ،او په شپږ اویا کې دوه بنت لبون دي ترنیوی پوري او په یونیوی کې دوه حقې دي تر یوسل اوشلو پوري .

**تشریح** ،(۴)مصنف رحمه الله دسائمه څارویو تعریف کړی دی چې سائمه څاروي هغه دي چې دکال په اکثر برخه کې په ځنګل کې په څریدلو ګذاره کوي حتی که یې شپږمیاشتې یاله دي څخه زیات وخت په کورکې

وابنه ورکړنو هغه څاروی سائمه نه دي لهذا په دوئ کې زکوة هم واجب نه دی ،ليکن په سائمه څارويو کې د زکوة دوجوب لپاره شراط دادی چې له دوئ څخه به مقصود شيدي او دنسل زياتوالی وي ولی چې که له دوئ څخه مقصود سورلی يا غوبنه وي نو په دوئ کې زکوة واجب نه دی .(کذافی احسن الفتاوی :۴/۲۸۵)

ف :همداشان که له حيواناتو څخه مقصود تجارت وو نو په دي څارويو کې دڅارويو زکوة واجب نه دی يعنی په دوئ کې زکوة دتعداد په اعتبارسره نه دی بلکه دقيمت په اعتبارسره واجب دی نو که ددوئ قيمت بقدرنصاب وو مثلاً دوسوو درهمو ياشل مثقالو ته ددوئ قيمت رسيدونو په دوئ کې دتجارت والازکوة (يعنی څلويښتمه حصه )واجب دی.

ف :له څارويو څخه دتجارت دمقصودوالی مطلب دادی چې داخيستلو په وخت ددوئ ديرته خرڅولو نيت وي،که يې له اخيستلو څخه وروسته دخرڅولو نيت وکړ،ياداچې داصل دبقااودنسل دخرڅولونيت وي که يې داصل داخيستلو په وخت کې دانيت وي ياوروسته وي ،په دې ټولو صورتونه کې داڅاروي دتجارت نه شمارل کيږي .(احسن الفتاوی :۴/۲۸۵)

(۵)په پنځه ويښتو اوښانو کې يو بنت مخاض (داوښ هغه ښځينه اولادته کوم چې يو کال يې پوره وي او په دوهم کال کې يې شروع کړي وي بنت مخاض ويل کيږي )واجب دی .

(۶)اوله پنځه ويښتو څخه په کمو اوښانو کې په هرو پنځو اوښانو کې يو پسه دی نو که له څلورو پنځه سائمه اوښان وي اوپرهغو کال تيرشي نو په دوئ کې يو پسه واجب دی ،بياله پنځو څخه ترنهو پوري عفو دی يعنی په نهو کې هم هغه يو پسه دی کله چې لس شي نو په دوئ کې دوه پسونه دي اوله لسو څخه ترڅوارلسو پوري معاف دي کله چې پنځه لس شي نو په دوئ کې دري پسونه دي اوله پنځه لسو څخه ترنولسو پوري معاف دي کله چې شل شي نو په دوئ کې څلور پسونه دي اوله شلو څخه ترڅلورويښتو پوري معاف دي .

(۷)له پنځه ويښتو څخه ترپنځه ديرشو پوري معاف دي کله چې شپږديرش شي نو په دوئ کې يو بنت لبون (هغه ښځينه اولادته دکوم چې دوه کاله پوره وي اودريم يې شروع وي بنت لبون ويل کيږي ) واجب دی .

(۸)اوله شپږديرشو څخه ترپنځه څلويښتو پوري عفو دي کله چې شپږ څلويښت شي نو په دوئ کې يو حقه (هغه ښځينه اولادته دکوم چې دري کاله پوره وي اوڅلورم يې شروع وي حقه ويل کيږي ) واجب دی اوله شپږ څلويښتو څخه بياترشپيتو پوري عفو دي .

(۹)کله چې يو شپيته شي نو په دوئ کې يو جذعه (هغه ښځينه اولادته دکوم چې څلور کاله پوره وي اوپنځم يې شروع وي جذعه ويل کيږي )واجب دی اوله يو شپيته څخه بياترپنځه اوياپوري عفو دي .

(۱۰)اوله چې شپږاوياشي نو په دوئ کې دوه بنت لبونه دي اوله شپږاوياڅخه بياترنيوي پوري عفو دي اوکله چې يو نيوي شي نو په دوئ کې دوه حقې دي له يو نيوي څخه بياتريوسل اوشلو پوري عفو دي

،ددي ټول تفصيل دليل دادی چې اثارپه دي متفق دي اودنبی کريم ﷺ دزکوة فرمان په همدي تفصيل سره مشهوردی اوپه همدي دامت اجماع ده .

(۱۱)ثم في كل خمس شاة إلى مائة وخمس وأربعين (۱۲)فيها حقتان وبنت مخاض (۱۳)وفي مائة وخمسين ثلاث حقاق (۱۴)ثم في كل خمس شاة وفي مائة وخمس وسبعين ثلاث حقاق وبنت مخاض وفي مائة وست وثمانين ثلاث حقاق وبنت لبون وفي مائة وست وتسعين أربع حقاق إلى مائتين ثم تستأنف الفريضة أبدا كما تستأنف في مائة وخمسين (۱۵)والبخت كالعراب

**ترجمه**:بیاپه هرو پنځو کې يو پسه دی تريو سل اوپنځه څلويښتو پوري ،بیانوپه دوئ کې دوه حقې اويو بنت مخاض دی اوپه يوسل اوپنځوس کې دري حقې دي ،بیاپه هرو پنځو کې يو پسه دی اوپه يوسل او شپږاتیاکې دري حقې اويوبنت لبون دی اوپه يوسل اوشپږنيوي کې څلورحقې دي تردووسووپوري بیا به له سره حساب کيږي همیشه لکه له يوسل اوپنځوس وروسته چې وو ،اوبختی اوښ دعربی اوښ په شان دی .

**تشريح**:(۱۱)يعنی له يوسل اوشلواوښانو څخه که دچااوښان زيات شول نوفريضه به له سره راگرځي نوکه پنځه اوښان زيات شول نويوپسه اودوه حقې به واجب وي اوکه لس زيات شول نودوه پسونه اودوه حقې به واجب وي اوکه پنځلس زيات شول نودري پسونه اودوه حقې به واجب وي اوکه شل زيات شول نوڅلورپسونه اودوه حقې به واجب وي .

(۱۲)اوکه پنځه ويښت زيات وي (يعنی ټول تعداديوسل اوپنځه څلويښت وي )نويوبنت مخاض اودوه حقې واجب دي ترنهه ويشتوپوري همدغه حساب دی کله چې ديرش زيات شي يعنی داوښانوټول تعداديوسل اوپنځوس شي نوپه دي کې دري حقې واجب دي .

(۱۳)له دي څخه وروسته به فريضه بيرته له سره راگرځي نوپه پنځوکې يوپسه ،په لسوکې دوه پسونه ،په پنځلسوکې دري پسونه ،په شلوکې څلورپسونه په پنځه ويشتوکې بنت مخاض يعنی کله چې تعداديوسل اوپنځه اوياشي نودري حقې اويوبنت مخاض واجب دی اوپه يوسل اوشپږاتیاکې دري حقې اويوبنت لبون واجب دی اوکله چې داوشانوتعداديوسل اوشپږنيوي ته ورسيږي نوپه دوئ کې څلورحقې دي تردووسووپوري ،له دي څخه وروسته به فريضه همیشه په دي شان راگرځي لکه څرنگه چې له يوسل اوپنځوسوڅخه وروسته په پنځوسوکې راگرځيدله نوکه له دوسووڅخه پنځه زيات شول نوپه دي کې څلورحقې اويوپسه واجب ده اوکه لس زيات شول نوڅلورحقې اودوه پسونه واجب دي الخ حتی چې پرهرپنځوسوکې يوه حقه ده .

(۱۴)يعنی بختی اوښ اوعربی اوښ دواړه په نصاب اومقداروجوب کې سره برابردي کله چې نصاب ته ورسيږي نوپه دوئ کې زکوة واجب دی ځکه چې ابل دواړوته شامل دی نوداابل په باره کې چې کوم نص وارددی هغه دواړوته شامل دی.

**ف**:کوم اوښ چې دعربی اوعجمی له مخلوطې نطفې څخه پيداوي هغه ته بختی ويل کيږي ،دبخت نصرطرف ته منسوب دی ولی چې ترټولوله مخه بخت نصرعربی اوعجمی سره جمع کړي وو کله چې له هغه څخه بچی پيداشونوخلکوهغه ته بختی ويل شروع کړل ،بخت نصرمرکب نوم دی دابن صنم (دبت زوی)په

معنى ـ : : ي رى چي داله بت سره پيدا شوى وو دده پلار معلوم نه دى له دي وجې يې دى بت ته منسوب کړي دى كماقال ابن عابدين: وكان وجد عند الصنم ولم يعرف له اب فنسب اليه (ردالمحتار:۸۱/۲)

## باب صدقة البقر

دا فصل دغوايانو د زکوة په بيان کې دى

مصنف رحمه الله د صدقة البقر بيان ترصدقة الغنم په دي وجه مخته کړچې بقر دخپل جسامت او قيمت په اعتبار له اوښ سره ډير مناسبت لري لهذا داوښانو دزکوة له بيانولو څخه وروسته يې دغوايانو دزکوة په بيان شروع وکړه اوبقرته بقر په دي وجه ويل کيږي چې بقر دڅيري کولو په معنى دى .اوبقرهم ځمکه په خپلو ښکرو سره څيري کوي .بقرجنس دى دده واحد بقرة دى که مذکر وي که مؤنث .لکه تمر او تمرة نو دده تاء دوحدت لپاره دده دتانيث لپاره نه ده .

(۱۵) في ثلاثين بقرة تبيع ذو سنة او تبيعة (۱۶) وفي اربعين مسن ذو سنتين او مسنة (۱۷) وفيما زاد بحسابه الى ستين ففيها تبيعان (۱۸) وفي سبعين مسنة وتبيع (۱۹) وفي ثمانين مسنتان (۲۰) فالفرض يتغير في كل عشر من تبيع الى مسنة (۲۱) والجاموس كالبقر

**ترجمه**: په ديرشو غوايانو ،غواوو کې يو کلنى سخندر يا سخندره ده .او په څلويښتو کې دوکلنى سخندر يا سخندره ده. او له دي څخه په زياتو کې په همدي حساب سره دى ترشپيتو پوري په شپيتو کې دوتبيع دي .او په اويا وو کې يو مسن او يو تبيع ده .او په اتيا وو کې دوه مسني دي .نو فرض متغير کيږي په هرلسو باندي له تبيع څخه مسني ته .او کامينه د غوا په شان ده .

**تشريح**:(۱۵)يعنى له ديرشو غواوو څخه په کمو کې زکوة نشته او په ديرشو کې په دي شرط چې سائمه به وي او پردوئ به کال هم تيرشوى وي يوه تبيع (دغوا يوکلنى نربچى )يا تبيعه (دغوا يوکلنى ښځينه بچى)واجب دى.

(۱۶)بيا ترڅلويښتو پوري معاف دي او په څلويښتو کې يو مسن (دغوا دوکلنى نربچى)يا يوه مسنه (دغوا دوکلنى ښځينه بچى)واجب دى ولى چې نبى کريم ﷺ حضرت معاويه رضي الله عنه ديمن والى مقرر کړاووېي ليږداوو نو ده ته يې حکم وکړچې په هرو ديرشو بقرو کې يو تبيع يا يوه تبيعه اخله او په هرو څلويښتو بقرو کې يو مسن يا يوه مسنه اخله .

(۱۷)يعنى که له څلويښتو بقرو څخه زيات شو نو له امام ابوحنيفه رحمه الله څخه يو روايت دا دى چې له څلويښتو څخه په زياتو کې ترشپيتو پوري بقدر حساب زکوة واجب دى چنانچه که له څلويښتو څخه يو زيات شو نو په ده کې دمسني ربع عشر ده يعنى په يو څلويښتو بقرو کې يوه مسنه واجب ده او په يوه زيات کې ديوي مسني څلويښتمه حصه واجب ده او ددوو داضافه کيدو به صورت کې دمسني نصف عشر واجب دى يعنى په دو څلويښتو کې يوه مسنه او په دوو زايدو کې دمسني دوه څلويښتمي حصي واجبي دي او ددريو داضافه کيدو په صورت کې دمسني دري ربع عشردي يعنى په دري څلويښتو کې يوه مسنه او دمسني دري څلويښتمي حصي واجب دي على هذا القياس ترشپيتو پوري .ددي روايت دليل دا دى چې له ديرشو څخه

ترڅلويښتوپوري عفوخلاف القياس په روايت سره ثابته ده لهذپه دي باندي کوم بل مقدارنشي قياسيداى ،اوله څلويښتوڅخه ترشپيتوپوري دعفوپه باره کې کوم روايت نشته لهذا معاف نه دي.

ف: دصاحبينوپه نزدله څلويښتوڅخه ياترشپيتوپوري هيڅ نشته همدايوروايت له امام صاحب څخه هم دى اوهمدااعدل الاقوال اومفتى به بلل شوى دى كمافى الشامية:(قوله بحرعن الينابيع)عزاه فى البحر الى الاسبيجابى وتصحيح القدورى وليس فيه ذكرالينابيع وفى انهروهى اعدل كمافى المحيط وفى جوامع الفقه المختاروقولهما فى الينابيع والاسبيجابى وعليه الفتوى(ردالمحتار:٢/٢٠)،دصاحبينودليل دادى چې کوم وخت حضرت معاذ بن جبل ﷺ له يمن څخه دنبى كريم ﷺ په خدمت كې حاضرشونونبى كريم ﷺ ده ته وفرمايل﴿ لاتاخذمن اوقاص البقرشيا ﴾(يعنى له اوقاص بقرڅخه څه مه اخله) علماوداوقاص تفسيردڅلويښتواوشپيتوپه مابين باندي کړى دى ،اوپه شپيتوبقروكې دوتبيع يادوه تبيعې دي.

(١٨)اوپه اوياووكې يوه مسنه اويوه تبيع ده يعنى په څلويښتوكې مسنه اوپه ديرشوكې تبيع ده

(١٩)اوپه اتياوو كې دوه مسنې دي يعنى په هروڅلويښتويوه مسنه ده اوپه نيوي كې دري تبيعې دي اوپه سلوكې دوه تبيعې اويوه مسنه ده، (٢٠)له دي وروسته په اتياوو قياس دى نوپه هره لسيزه دزكوة فريضه متغيره كيږي له تبيع څخه مسنې ته اوله مسنې څخه تبيعې ته ،لهذاپه يوسل اولسوكې يوه تبيع اودوه مسنې دي اوپه يوسل اوشلوكې كه دمالک خوښه وي نودري مسنې دي وركړي اوكه يې خوښه وي نوڅلورتبيعې دي وركړي﴿ لقوله ﷺ فى كل ثلاثين من البقرتبيع اوتبيعة وفى كل اربعين مسن اومسنة ﴾(يعنى په هرو ديرشوبقروكې يوتبيع يايوه تبيعه ده اوپه هروڅلويښتوبقروكې يومسن يايوه مسنه ده.

(٢١)قوله والجاموس كالبقراى الجاموس فى حكم وجوب الزكوة كالبقر،يعنى گاميښه اوغوادزكوة په حكم كې سره برابري دي حتى دبقرپه شان په ديرشوگاميښوكې يوكلنى بچى اوپه څلويښتوگاميښوكې دوكلنى بچى واجب دى ولى چې دبقرلفظ غوااوگاميښودواړوته شامل دى.

ف:غوااوگاميښه څرنګه چې دزكوة اواضحيې په احكاموكې يوجنس دى لهذاكه ددواړومجموعه بقدرنصاب يعنى ديرش ياله ديرشوڅخه زياته وه نوزكوة فرض دى په دواړوكې چې دكوم عددزيات وو په زكوة كې دي هغه وركوي اوكه دواړه سره برابري وي نوپه دواړوكې دي له اعلى قسم څخه دادنى قيمت والاوركوي اوياله ادنى قسم څخه داعلى قيمت والاوركوي دبزي اوپسه همدغه حكم دى .(احسن الفتاوى ٤/٢٨٥:)قال ابن عابدين: لان النصاب اذاكان ضانايؤخذالواجب من الضان ولومعزافمن المعز ولومنهمافمن الغالب ولوسواءفمن ايهماشاء (ردالمحتار:٢/٢٠)

## فصل فى الغنم

### دافصل دبزودزكوة په بيان كې دى

پسه اوبزي دواړوته شامل دى لفظ غنم اسم جنس دى كوم چې نراوښځې دواړوته ويل كيږي په دي وجه مونث من لفظه نشته .بزوته غنم په دي وجه ويل كيږي چې دوئ ددفاع اله نه لري لهذابزي دهرطرف ...

غنيمت دي او دصدقة الغنم بيان يې په صدقة الخيل په دي وجه مخته كړچې ددوئ دكثرت له وجه ددوئ دبيان ضرورت ډيردی يا په دي وجه چې دبزو زكوة متفق عليه دی او داسانو زكوة مختلف فيه دی .

(۲۲)في أربعين شاة شاة (۲۳)وفي مائة وإحدى وعشرين شاتان (۲۴)وفي مائتين وواحدة ثلاث شياه (۲۵)وفي أربعمائة أربع شياه (۲۶)ثم في كل مائة شاة (۲۷)والمعز كالضأن (۲۸)ويؤخذ الثني في زكاتها لا الجذع

**ترجمه**: په څلويښتو بزو كې يوه بزه ده ،او په يوسل او شلو كې دوه بزي دي ،او په دوه سوه يوه كې دري بزي دي ،او په څلورسوو كې څلوربزي دي ،بيا په هر سلو كې يوه ابزه ده ،او بزه دپسه پشان ده ،او دبزو په زكوة كې به ثنی اخيستل كيږي نه جذع .

**تشريح** :(۲۲)يعنی له څلويښتو سائمو بزوڅخه په كمو كې زكوة نشته كله چې څلويښتو ته ورسيږي نو په دوئ كې يوه بزه واجب ده په دي شرط چې دابزي به سائمه وي اوپردوئ به كال هم تيرشوی وي .

(۲۳)اوتريوسلو شلو پوري همدا يو بزه ده كله چې په يوسل او شلو يوه زياته شي يعنی يوسل او يوشت شي نو په دوئ كې دوي بزي واجب دي تردوو سوو پوري همدادوه بزي واجب دي .

(۲۴)كله چې پردوه سوه باندي يوه بزه اضافه شي يعنی ټول تعداددوه سوه يوشو نو په دوئ كې دري بزي واجب دي .

(۲۵)بيا همدادري بزي دي ترڅو چې څلورسوو ته ورسيږي نو په دوئ كې څلور بزي واجب دي .

(۲۶)قوله ثم في كل مائة شاة ای بعدمابلغت اربع مائة تجب فی كل مائة شاة الی غيرنهاية .يعنی كله چې ټول تعدادڅلورسوه ته ورسيږي له هغه وروسته په هرو سلو باندي يوه بزه زياتيږي حتی په پنځه سوه كې پنځه اوپه شپږسوه كې شپږ او په اووسوه كې اوه علی هذا القياس واجب دي همدا تفصيل دنبی كريم ﷺ زكوة په فرمان كې وارد شوی دی او په همدي باندي اجماع هم ده .

(۲۷)قوله المعز كالضان ای حكم المعز فی تكميل النصاب ووجوب الزكوة كحكم الضان .يعنی دبزي اوپسه حكم دنصاب په مقدار اودزكوة په وجوب اوداضحيه په جواز كې يوشان دی يعنی كه بزي اوپسونه مخلوط وي اومقدارنصاب ته رسيږي نو په دوئ كې زكوة واجب دی ولی چې په حديث شريف كې دغنم لفظ وارد شوی دی اوغنم پسه اوبزي دواړوته شامل دی .ضأن پسه ته ويل كيږي اومعز بزي ته ويل كيږي اوغنم په دواړو كې استعماليږي .

**ف**:دابايدياد وساتل شي چې دمقدارنصاب بزكوة په وجوب كې دپسه اوبزي حكم يوشان دی مگر دواجب په اداء كولو كې ددواړو حكم يوشان نه دی نو كه له چا سره څلويښت بزي اوپسونه وو اوپسونه په كې ډيروو نو دبزي په وركولو سره واجب زكوة اداء كول جائز نه دي بلكه په دي صورت كې به داعلی نوع ادنی وركوي يا به ادنی نوع اعلی وركوي قال ابن عابدين :(قوله لا فی اداء الوجب )لان النصاب اذاكان ضأنا يؤخذ الواجب من الضان ولو معزا فمن المعز ولو منهما فمن الغالب ولو سواء فمن ايهما شاء جوهرة ای فيعطی ادنی الاعلی اوعلی الادنی كماقدمناه فی الباب السابق (ردالمحتار:۲/۲۰)

(۲۸)دپسونو اوبزو په زكوة كې به ثنی اخيستل كيږي ثنی هغه ده چې يو كال يې پوره شوی وي او په دوهم كې شروع وي او جذع به نه اخيستل كيږي جذع هغه ده په كوم چې ديوه كال اكثره حصه تيره شوي وي

ولې چې دحضرت علی ﷺ حديث دی لَايُؤْخَذُفِي الزَّكَاةِإِلَّا الثَّنِيُّ فَصَاعِدًا (يعنی په زکوة کې به ثنی اخيستل کيږي ياله هغې څه بالا).

ف:دصاحبينوپه نزددپسه جذع اوثنی دواړه جائزدي﴿لقوله ﷺ إنَّمَاحَقُّنَافِي الْجَذَعِ وَالثَّنِي﴾ (يعنی زمونږحق جذع اوثنی دی) صاحبينوته ځواب ورکول شوی دی چې ستاسې په ذکرشوی روايت کې له جذع څخه مراددا وښانو جذع ده دکوم دعمرچې څلورکاله پوره شوي وي اوپنځم يې شروع وي.

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی کمافی الدرالمختار:وعنه جواز الجذع من الضأن وهوقولهماوالدليل يرجحه ذكره الكمال قال ابن عابدين (قوله ذكره الكمال )واقره فی النهرلكن جزم فی البحروغيره بظاهرالرواية وفی الاختيارانه الصحيح (الدرالمختارمع الشامية: ٢/٢١)

(٢٩)ولاشيءَفي الْخَيْلِ (٣٠)وَ الْبِغَالِ وَالْحَمِيرِ (٣١)وَ الْحُمْلَانِ وَالْفُصْلَانِ وَالْعَجَاجِيلِ (٣٢)وَ الْعَوَامِلِ وَالْعَلُوفَةِ

**ترجمه** :اوهيڅ نه دي واجب په اسانو کې ،اوپه خرواوکچروکې ،اوپه حملان اوفصلان اوعجاجيلو کې ، اودکارپه څارويوکې اوپرکورخوراک کونکوڅارويوکې .

**تشريح**:(٢٩)دصاحبينوپه نزدپه اسانو کې زکوة واجب نه دی وعليه الفتوی ،دصاحبينودليل دنبی کريم ﷺ ارشاددی﴿ليس على الْمُسْلِمِ فِي فَرَسِهِ وَغُلَامِهِ صَدَقَةٌ﴾ (يعنی پرمسلمان دهغه په مريې کې اودهغه په اس کې صدقه نشته )،دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدکه اسان سائمه وو اونراوښځې دواړه وو ياصرف اسپې وي نوددوئ مالک لره اختياردی که يې خوښه وي دهراس پرسردي يودينارورکړي اوکه يې خوښه وي نودا اسانو قيمت دي معلوم کړي اوپه هرودووسوو درهمو (درهم دري ماشې يوه رتی اودرتی پنځمه حصه ده )کې دي پنځه درهمه ورکړي ،دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دنبی کريم ﷺ ارشاددی ﴿ فی کل فرس سائمة ديناراوعشرة دراهم ﴾(يعنی په هرسائمه اس کې يوديناريالس دراهم واجب دي)، اودصاحبينودړاندي کړای شوي حديث تاويل دادی چې له دي څخه دغازي اس مراددی اوپه فرس غازي کې بالاتفاق زکوة نشته.

ف:دصاحبينوقول راجح دی، کمافی الفقه الاسلامی وادلته :وقال الصاحبان وبقولهمايفتی لازكوة فی الخيل (فقه الاسلامی وادلته ٢/٨٣٧:)وقال الشيخ عبدالحكيم الشهيدلكن الراجح قولهمالماقالواان لفظ الفتوی اكدالفاظ الترجيح وقدعلمت التصريح بالفتوی من كبراهل الترجيح وايضاقدعرفت كثرةمن مال الی قولهمامن كبارالمشائخ (هامش الهداية:١/١٧٣)

(٣٠)قوله والبغال والحميراي لاشيء فی البغال والحمير ،يعنی په خرواوکچروکې زکوة نشته ولې چې نبی کريم ﷺ څخه ددوئ په باره کې پوښتنه وشوه نونبی کريم ﷺ وفرمايل﴿ لم يُنْزَلْ عَلَيَّ فِيهِمَا شَيْءٌ ﴾(يعنی پرمادخرواوکچروپه باره کې هيڅ شی نه دی نازل کړل شوی )اودزکوة مقاديرسماعی دي عقلی نه دی نوچې له نبی کريم ﷺ څخه په دي باره کې دڅه شي سماع نشته نوپه دوئ کې به زکوة هم واجب نه وي ،که خره اوکچردتجارت لپاره وو نوپه دوئ کې تجارتی زکوة واجبيږي ولې چې په دي صورت کې زکوة له ماليت سره تعلق لري لکه څرنګه چې په نوروامو ال تجارة کې زکوة له ماليت سره تعلق لري .

(٣١)قوله والحملان والفصلان والعجاجيل ای لاشيء فی ولدالضان والناقة والبقرة قبل ان يتم الحول ،يعنی دطرفينوپه نزددبزي، اوښ اوغواپه تريوکال کم بچيانوکې زکوة واجب نه دی مراددادی چې له يوڅاسره صرف بچيان وي نوپه دوئ کې زکوة نشته اوکه غټان هم وو نوزکوة واجب دی ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزدپه دي

بچيانوکې به له دوئ څخه يودانه واجب وي مثلادبزوڅلويښت بچيانوکې يوبچې بطورزکوة واجب دی ،دامام ابويوسف رحمه الله دليل دادی چې له همدي بچيانوڅخه ديوه بچي په ورکولوکې دصاحب مال اوفقيردواړورعايت دی په دي وجه چې په صغاروکې لوی څاروی واجب شي نودصاحب مال نقصان دی اوکه زکوة بالکل واجب نه شي نوپه دي کې دفقرا٫و نقصان دی په دي وجه موږداسې قول مختارکړوپه کوم کې چې ددواړوطرفورعايت شوی دی.

دطرفينودليل دادی چې دنصاب په مقداربزکوة کې دقياس هيڅ دخل نشته نوشريعت چې کوم شی واجب کړی دی دهغه واجبول که ممتنع شونودهغه متبادل به کوم شی واجب نه وي ،اوپه دي بچيانوکې دلوی څاروی په واجبولوکې دصاحب نصاب نقصان دی نوددي واجبول ممتنع شول اوماوردبه الشرع لوی دی لهذاپه دي بچيانوکې به هيڅ شی هم واجب نه وي،همدا قول مفتی به دی کمافی الدرالمختار: ولافی حمل وفصيل وعجول وصورته ان يموت کل الکباروبتم الحول علی اولادها الصغارالاتبعاللکبيروفی القهستانی عن التحفة الصحيح قولهما.(الدرالمختارمع الشامية:۲/۲۲، کذافی حاشية الشيخ عبدالحکيم الشاه وليکوتی:۱/۱۷۳)

مګرسوال دادی چې زکوة خوپه نصاب دکال تيريدلوڅخه وروسته واجبيږي نوکله چې په وريانو، جونګيانواوسخندرانو کال تيرشونودوئ خوبچيان پاتې نه شول نوددې څه صورت دي چې دادي بچيان هم وي اوپردوئ دي کال هم تيرشي بزکوة دي واجب شي ؟

ځواب :ددي صورت دادی چې له يوچاسره دسائمه څارويونصاب وي پرهغوئ لس مياشې تيري شوي اودتولوبچيان پيداشول اوصرف بچيان هم قدرنصاب ته رسيږي بيادوئ مندي مړي شوي اوبچيان پاتې شول نوپه دي صورت کې له دوو مياشتوروسته کال پوره کيږي ،نودطرفينوپه نزدپه دي بچيانو کې زکوة نشته اودامام ابويوسف رحمه الله په نزدزکوة واجب دی .

ف: فصلان دفصيل جمع ده داوښې له يوکال څخه کم بچې ته ويل کيږي اوحملان دحمل جمع ده دبزي له يوکال څخه کم بچې ته ويل کيږي اوعجاجيل دعجول جمع ده اوغوابچې ته ويل کيږي .

(۳۲)قوله والعوامل والعلوفة ای لاشئ فی العوامل والعلوفة ،عوامل دعاملة جمع ده هغه څاروی ته ويل کيږي چې دکارلپاره وي اوعلوفة هغه څاروی دی کوم چې نيم کال ياله نيم کال څخه زيات مالک پرکورباندي واشه ورکړي وي (يعنی سائمه نه وي )زموږپه نزدپه عواملواوعلوفة څارويوکې زکوة نشته ولی چې دزکوة سبب مال نامی دی اودااموال ناميه نه دي ولی چې دنما٫ دليل په مباح ځنګل کې دڅارويوڅرول دي يادوئ دتجارت لپاره برابرول دي اوپه مذکوره څارويوکې څرنګه چې داخبره نشته نوپه دوئ کې نماء هم نشته لهذاپه دوي کې زکوة هم نشته .

ف:دامام مالک رحمه الله په نزدپه عواملواوعلوفة څارويوکې هم زکوة واجب دی ولی چې په (خذمن اموالهم صدقة)(واخله ددوئ له اموالوڅخه صدقه )کې داموال لفظ مطلق دی هرقسم اوښ غواوغيره ته شامل دی که عوامل وي ياغيرعوامل، علوفة وي که سائمه ،امام مالک رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې (خذمن اموالهم صدقة)مطلق نه بلکه مجمل دی دنبی کريم ﷺ ارشاد (ليس فی العوامل صدقة )(په کارکونکو څارويوکې زکوة نشته )دهغه لپاره تفسيردی ،اوعلوفه څارويوته څرنګه چې په کورکې خورک وکول کيږي دکوم په

وجه چې په مالک ډیر مصرف راځي لهذا په دوئ کې معنی نمانشته حال دا چې زکوة په مال نامی کې واجبیږي.

(۳۳) وَالْعَفْوِ (۳۴) وَالْهَالِكِ بَعْدَ الْوُجُوبِ (۳۵) وَلَوْ وَجَبَ سِنٌّ وَلَمْ يُوجَدْ دَفَعَ أَعْلَى مِنْهَا وَأَخَذَ الْفَضْلَ أَوْ دُونَهَا وَرَدَّ الْفَضْلَ (۳۶) أَوْ دَفَعَ الْقِيمَةَ (۳۷) وَيَأْخُذُ الْوَسَطَ (۳۸) وَيَضُمُّ مُسْتَفَادًا مِنْ جِنْسِ نِصَابٍ إِلَيْهِ

**ترجمه:** او په عفو کې (زکوة واجب نه دی) او په هلاک شویو کې له وجوب څخه وروسته، او که واجب شو دکوم عمر والا او هغه موجود نه وو نو له دي څخه دي اعلی ورکړي بزیادت دي واخلي، او له دي څخه دي ادنی ورکړي بزیادت دي هم ورکړي، او وادي خیستل شي درمیانه څاروی، او یوځای دي کړای شي له کوم جنس څخه حاصل شوی هغه جنس ته.

**تشریح:** دمال یو نصاب وي او عفو وي مثلاً په پنځو اوښانو کې یوه بزه واجبیږي او ترنهو پوري هم دا یوه بزه ده کله چې لس اوښان شي نو په دوئ کې دوه بزي او اجبیږي نو پنځه اولس خو نصاب دي لیکن په مابین کې له شپږو څخه ترنهو پوري عفو دي.

(۳۳) قوله والعفو ای لاشئ فی العفو، یعنی د دوو نصابونو په درمیانی مقدار کې زکوة نشته، په دي کې اختلاف دی چې د زکوة تعلق له عفو سره شته او که نه، د شیخینو په نزد د زکوة تعلق له عفو سره نشته (یعنی په عفو کې زکوة نشته) او د امام محمد او امام زفر په نزد د زکوة تعلق له عفو سره هم شته، ثمره اختلاف له دي مثال څخه ظاهره کیږي چې له چاسره نهه اوښان وو نو په هغوئ کې یوه بزه واجبه ده نو که له دوئ څخه څلور اوښان هلاک شول نو د شیخینو په نزد څرنګه چې د زکوة تعلق له عفو سره نشته بلکه له نصاب سره ده او نصاب اوس هم باقی دی لهذا اوس به هم په صاحب مال باندي هغه یو بزه او اجبه وي او د امام محمد او امام زفر په نزد څرنګه چې د زکوة تعلق له عفو سره هم شته لهذا د دوئ په نزد به د بزي قیمت نهه حصي کړي او پنځه حصي پر ده واجب دي او څلور حصي ساقطي دي.

د امام محمد او امام زفر دلیل دا دی چې زکوة د نعمت مال د شکر په طور واجب دی او ټول مال نعمت دی که عفو وي او که نصاب لهذا د زکوة تعلق به هم له ټول سره وي، د شیخینو دلیل دا دی چې عفو څرنګه چې له وجوب نصاب وروسته ثابتیږي په دي وجه عفو د نصاب تابع ده او قاعده دا ده چې هلاک شوی مال به تابع ته راجع کیږي نه اصل ته لهذا دا به ویل کیږي چې عفو هلاکه شوه نه اصل.

ف: د شیخینو قول راجح دی لمافی القول الراجح: (القول الراجح) هو قول الشیخین قال العلامة عالم بن العلاء الهندی ان المال اذا اشتمل علی النصاب والعفو فالواجب یتعلق بالنصاب وحده استحسانا عند ابی حنیفه وابی یوسف حتی لو هلک العفو وبقی النصاب بقی کل الواجب الخ (القول الراجح: ۱/۱۷۰)

(۳۴) قوله والهالک بعد الوجوب ای لاشئ فی الهالک بعد وجوب الزکوة، یعنی د زکوة له واجبیدلو څخه وروسته که مال بې له تعدی څخه هلاک شو نو د هغه زکوة هم ساقطیږي او که بعض مال هلاک شو نو د هغه په اندازه زکوة ساقطیږي ولی چې د زکوة تعلق له عین مال سره دی د مالک له ذمې سره نه دی نو کله چې مال نه شو پاته نو واجب مقدار هم نه پاته کیږي لهذا زکوة ساقطیږي.

ف:مګر شرط دادی چې مال به پخپله هلاک شوی وي دمالک په تعدی سره به نه وي هلاک شوی یعنی دمال دهلاکت سبب مالک نه وي که نه نو زکوة نه ساقطیږي په دي شرط چې دکال پوره کیدوڅخه وروسته له مالک څخه تعدی وشي ولی چې له وجوب زکوة وروسته دزکوة مال دمالک په لاس کې امانت دی اوبه تعدی سره دامانت دهلاکولوپه صورت کې امین ضامن دی کمافي الدرالمختار:(بخلاف المستهلک )بعدالحول لوجودالتعدی.قال ابن عابدين:(قوله لوجودالتعدی)علة لقوله بخلاف المستهلک فانه بمعنی تجب فيه الزكوة (الدرالمختارمع الشامية:٢/٢٣)

**الالغاز**:ای مال وجبت فيه زكوته ثم سقطت بعدالحول ولم يهلک؟

**فقل**:الموهوب اذارجع الراهب فيه بعدالحول،ولازكوة علی الراهب ايضا (الاشباه والنظائر)

(٣٥)اوکه دچاپه ذمه دکوم عمروالاخاروی لازم شواوهغه له ده سره موجودنه وو نومالک دي له هغه څخه اعلی ورکړي بزيادت دي واخلي يادي له هغه څخه ادنی ورکړي بزيادت دي هم ورکړي اويادي دواجب شوی څاروی قيمت ورکړي، مثلاکه دچاپرذمه مسن واجب شومګرله ده سره مسن نه وو البته حقه موجودده وه نوعامل(دحکومت له طرفه دزکوة راټولونکی ته عامل ويل کيږي )ته په کاردي چې هغه اعلی يعنی حقه واخلي اودبنت لبون څخه زيات قيمت واپس کړي مثلاًدبنت لبون قيمت زر روپی دی اودحقې قيمت پنځلس سوه روپی دی نوعامل دي حقه واخلي اوپنځه سوه روپی دي رب المال ته بيرته ورکړي .يادي عامل دادنی درجې څاروی واخلي بزياتوب دي دقيمت په اعتبارسره واخلي مثلا پريوچاحقه واجبه شوه مګرله ده سره حقه نه وه البته بنت لبون وو اودبنت لبون قيمت زرروپی وو دحقې قيمت پنځلس سوه روپی وو نوعامل دي بنت لبون واخلي اوله رب المال څخه دي پنځه سوه روپی زياتې واخلي.

(٣٦)قوله اودفع القيمة ای دفع قيمة ماوجب عليه ،يعنی که دچاپرذمه کوم څاروی واجب وو اوده دهغه څاروی پرځای دڅاروی قيمت په زکوة کې ورکړنوزموږپرمذهب داجائز دی ولی چې الله تعالی ټول مخلوق ته درزق درسولووعده کړي ده اودفقيرانورزق دمالدارانودمال ځلويشتمه برخه ده اودارزق په پسه .غوااواوښ کې منحصرنه دی بلکه دانسان نورهم ډيرحاجتونه دي کوم چې په دي څارويوسره نشي پوره کولای په دي وجه دڅاروی قيدلګول باطل دی بلکه که دده قيمت ورکول شونوهم جائز دی .همداحکم دعشر،خراج ،صدقة الفطر ،نذراوکفاراتوهم دی.

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزددڅاروی قيمت ورکول جائزنه دی هغه يې دقربانی په څاروی قياسوي اوغيرمنصوص ناجائز ګڼي ،امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې دقربانی په څاروی قياس کول صحيح نه دي ولی چې په قربانی کې قربت له اراقت دم سره متعلق دی اوهغه غيرمعقول دی حال داچې په زکوة کې دڅاروی دقيمت په اداء کولوسره مقصوددفقيرحاجت ختمول دي کوم چې معقول دی اومعقول په غيرمعقول قياسول صحيح نه دي.

(٣٧)يعنی مصدق(زکوة وصول کونکی)دي له صاحب المال څخه نه داعلی درجې مال اخلي اونه دي کمزوری اوخراب مال اخلي بلکه ددمنځني درجې مال دي اخلي ولی چې نبی کريم ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه ته فرمايلي وو﴿ إياک وكرائم أموالهم﴾(خبردارادخلګوله مالونوڅخه بنه مال مه اخله )، همداشان

واوسط درجې مال په اخيستلوكې دصاحب المال او فقير دواړورعايت دی په دي وجه چې دښه مال اخيستلوپه صورت كې دصاحب المال نقصان دی اودخراب مال اخيستلوپه صورت كې دفقير ضرردی.

(۳۸)يعنی كه له يوچاسره دكوم مال يونصاب وي مثلاً څلويښت پسونه وي بيادكال په منځ كې څه نورمال حاصل شو نودامال به يادمخكنی نصاب يعنی پسونوله جنس څخه وي اويابه نه وي ،په اول صورت كې به حاصل شوی مال له سابقه نصاب سره يوځای كيږي اوداصل نصاب حولان حول به دمال مستفادحولان حول شمارل كيږي لهذا په دي مستفادمال كې به بغيرله كامل كال تيريدلوزكوة واجب وي ولی چې كه دكال په منځ كې دهرحاصل شوی مال لپاره دنوی حولان حول شرط ولګول شي نودابه انتهائی سخت كاروي دكوم له وجه به چې مالک په مصيبت كې مبتلاء شي لهذا كه مستفادمال داصل له جنس څخه وو نوداصل نصاب حولان حول دمال مستفادحولان حول په شمارلوكې دمالک لپاره اسانې ده اوكه مال مستفادداصل نصاب له جنس څخه نه وو نودده لپاره دمستقل حولان حول شمارل مشكل نه دي لهذا په دوهم صورت كې به حاصل شوی مال دسابقه نصاب سره نه ضم كيږي بلكه پرده به له سره دحولان حول اعتباركيږي.

(۳۹)وَلَوْ أَخَذَ الْخَرَاجَ وَالْعُشْرَ وَالزَّكَاةَ بُغَاةٌ لَمْ تُؤْخَذْ أُخْرَى (۴۰)وَلَوْ عَجَّلَ ذُو نِصَابٍ لِسِنِينَ (۴۱)أَوْ لِنُصُبٍ صَحَّ

**ترجمه**:اوكه واخستي خراج ،عشراوزكوة باغيانونودوهم ځل به نه اخيستل كيږي،اوكه وړاندي وركړكوم صاحب نصاب دځوكالوزكوة ،يادځونصابونوزكوة نوداصحيح دي.

**تشريح**:(۳۹)كه له چاڅخه خراج ،عشريازكوة باغيانووصول كړنودوهم ځل به له مالک څخه نه اخيستل كيږي ولی چې امام دده دمال حفاظت نه دی كړی ولی چې دامام دكوتاهي له وجه پرده بغات قابض شول حال داچې دامام له رعاياڅخه دعشروغيره اخيستل ددوئ داموالودحفاظت له وجه دی.هوكه مالک عشری مال دباغيانوپه علاقه تيركړاوباغيانوله ده څخه عشرواخيست نواوس به له ده څخه دوهم ځل عشراخيستل كيږي ولی چې په دي صورت كې كوتاهي دمالک له طرفه ده دامام المسلمين له طرفه نه ده.

**ف**:دبعضوحضراتورأيه داده چې باغيانوته دزكوة وركولوپه وخت كې كه مالک دزكوة نيت وكړنوزكوة اداكيږي ولی چې له باغيانوسره كه په صحيح معنی سره حساب وشي نوهغوئ به فقيران ثابت شي مګرداكثرومشانخو فتوی داده چې فيمابينهم وبين الله له خراج څخه ماسوادنوروااعاده دي وكړي ولی چې باغيان دخراج مصرف دي مګردزكوة مصرف نه دي كمافی الشامية :قال فی الهداية وافتوابان يعيدوهادون الخراج لكن هذافيمااخذه البغاة لتعليلهم بان البغاة لاياخذون بطريق الصدقة بل بطريق الاستحلال فلايصرفونهاالی مصارفهاذكرفی المعراج ان السلطان الجائركالبغاة لانه لايصرفهاالی مصارفه وفی الهداية انه الاحوط (ردالمحتار:۲/۲۶)،بغاة دباغی جمع ده باغی هغه ته ويل كيږي كوم چې دامام المسلمين له اطاعت څخه انكاروكړي اوپه كوم ښار قبضه وكړي.

## دحکومتي ټیکس اوزکوة په منځ کې فرق

**ف**:حکومت ته دورکونکی ټیکس اوزکوة ترمنځ لوی بنیادی او اساسي فرق دی ،زکوة یو عبادت دی په دې وجه په ده کې نیت او اراده ضروري ده ،اخلاص او خدا ترسی (له خدایه ویره ) په کې مطلوبه ده ،دده لپاره متعین مصارف دي په هغوئ باندي مصرفیږي، په غیر مسلمانانو او خیریه کارونو کې دده استعمال جائزنه دی دده یو مقدار او تناسب متعین دی دواجبیدلو لپاره دمال یو حد مقرر دی ..........ددي برخلاف ټیکس عبادت نه دی لکه دحکومت اعانت یاله هغه ځخه درسیدونکي فائدي معاوضه ده نه دده لپاره کوم متعین تناسب او مقدار شته نه دکوم مال تعین ،نه دده لپاره دنیت او ارادي څه سوال شته او نه دده مصارف هغه دي کوم چې دزکوة مصارف وو ،په دي وجه په ټیکس اداء کولو سره زکوة نه اداء کیږي. (جدیدفقهی مسائل ۱/۲۲۱:)

(۴۰)که کوم صاحب نصاب کس دځو کالونو زکوة پیشګی (یعنی وړاندی)ورکړي نو داصحیح ده دامام مالک صاحب رحمه الله په نزد جائزنه ده ولی چې پرمال کال تیریدل شرط دي او دمشروط پر شرط مقدم کول جائزنه دي ،زموږدلیل دادی چې ده له سبب وجوب یعنی نصاب ځخه وروسته زکوة اداء کړی دی او له سبب وجوب ځخه وروسته دزکوة اداء کول جائزدی داپه دي شان ده لکه چې یو څوک یو مسلمان په داسې ډول سره زخمي کړي چې دهغه دژوندانه امیدپاته نشي نودی دکفاري په ډول سره دمجروح له مړه کیدلو ځخه وړاندي یو غلام ازاد کړي نو داجائزدی ولی چې دقتل سبب موجوددی..

(۴۱)قوله اولنصب صح ای لو عجل صاحب نصاب لنصب متعددة صح ،یعنی که دچاپه ملک کې یو نصاب وي او ده پیشګی دځو نصابونو زکوة اداء کړنو زموږ په نزدداجائزدی حال داچې دامام زفر رحمه الله په نزد جائزنه دی دده دلیل دادی چې هرنصاب دزکوة په حق کې اصل بذاته دی نودزکوة داداء کولو په وخت کې ځرنګه چې نصاب ثانی وثالث وغیره موجودنه دي لهذا اداقبل السبب اداء ده کومه چې جائزنه ده ، زموږدلیل دادی چې په سبب والی کې نصاب اول اصل دی له دي ماسوانورنصابونه دهغه تابع دي او داصل په موجودوالی سره تابع هم موجودشمارل کیږي نودیوه نصاب په موجودوالی سره ویل کیدای شي چې نورنصابونه هم موجوددي لهذا اداقبل السبب اداء نه ده په دي وجه صحیح ده .

**ف** :دځو کالونو یاځو نصابونو زکوة اداء کول هغه وخت صحیح دي چې مالک لږترلږه دیوه نصاب مالک وي که هغه دیوه کامل نصاب مالک هم نه وو نو بیا دځو کالونو یاځو نصابونو زکوة اداء کول صحیح نه دي ولی چې داقبل السبب اداء یګي ده نو داداسې شوه لکه له وخت ځخه وړاندي لمونځ اداء کول کمافی الشامیة:(قوله ولو عجل ذو نصاب)قیدبکونه ذا النصاب لانه لو ملک اقل منه فعجل خمسة عن مائتین ثم تم الحول علی مائتین لایجوز (ردالمحتار: ۲/۲۹)

### باب زکاة المال

دا باب دمال دزکوة په بیان کې دی

له مال څخه دلته له څارويو څخه ماسوا نورمالونه مراددي ولې چې دڅارويوحکم خوله دي څخه وړاندي بيان شو، په المال باندي الف لام عهدی دی معهودمال هغه دی دکوم ذکرچې دنبی کريم ﷺ په ارشاد، هاتواربع عشرامولکم کې شوی دی، بياپه دي باب کې دنقدينوحکم له نورومالونوڅخه په دي وجه مخته ذکرکړچې نقدين دنورومالونودقيمت په معرفت کې اصل دي ،هسې خودمال اطلاق په هرهغه کورنی ياتجارتي سامان ،ياڅمکې اوجايداد.څارويويانغدي سرمايې باندي کيږي کوم چې ديوه فرديا جماعت په ملکيت کې وي ،مګرپه عرف کې دمال اطلاق پرنقدی کيږي.

(۴۲)يجب في مائتي درهم وعشرين دينارا ربع العشر (۴۳)ولو تبرا او حليا او آنية (۴۴)ثم في كل خمس بحسابه (۴۵)والمعتبر وزنهما أداء ووجوبا

**ترجمه** :واجب دی په دوه سوه درهمه اوشلودينارو کې څلويښتمه حصه ،که څه هم ټوټې وي يازيور (ګينه) يالوښي وي ،بيادنصاب په هره پنځمه حصه کې په همدي حساب سره دي ،اومعتبردی ددوئ دواړووزن داداء په اعتبارسره اودوجوب په اعتبارسره.

**تشريح** :(۴۲)که دچاپه ملک کې پوره دوه سوه درهمه راغلواوپه پرهغوکال هم تيرشونوپه دوئ کې څلويښتمه حصه يعنی پنځه درهمه واجب دي ،همداشان که دچاپه ملک کې شل ديناره راغلواوپردوئ کال تيرشونوپه دوئ کې څلويښتمه برخه يعنی نيمايې دينارواجب دي په دي وجه چې نبی کريم ﷺ حضرت معاذ ﷺ ته ليکلي وو چې په هردووسوو درهموکې پنځه درهمه اخله اوپه هرو شلودينارنو کې نصف مثقال اخله (مثقال څلورماشې اوڅلوررتی وي).

**ف**:له دووسوو درهموڅخه په کموکې زکوة نشته لقوله ﷺ ليس فی مادون خمس اواق صدقة (يعنی له پنځو اوقيو څخه په کموکې زکوة نشته )اويوه اوقيه څلويښت درهمه وي نوپنځه اوقيې دوه سوه درهمه کيږي لهذاله دوو سوو درهموڅخه په کموکې زکوة واجب نه دی ،اودسروزرونصاب شل ديناره دی له شلو دينارونوڅخه په کموکې زکوة واجب نه دی ﴿لقوله ﷺ ليس في أقلّ من عشرين دينارًا صَدَقَةٌ﴾(له شلودينارونوڅخه په لږوکې زکوة نشته).

(۴۳)قوله ولوتبرا اوحليا ای يجب ربع العشرولو کان مقدارمائتی درهم اومقدارعشرين دينارتبرا اوحليا،زموږپه نزدپه غيروهل شوي دسروزرواوسپينوزروپه ټوټوکې اودهغوئ څخه په جوړشويوزيوراتواولوښوکې زکوة واجب دی ولې چې دزکوة دواجب والی سبب مال نامی (زياتيدونکی مال )دی اونماپردوه قسمه ده يوه خلقی (يعنی پيدائشي )لکه په سرو اوسپينوزروکې چې ده،اوبله فعلی کومه چې دتجارت په ذريعه سره پيداکيږي ،په سرواوسپينوزروکې دنمادليل موجوددی يعنی په خلقی اوپيدائشي ډول سره دسرو اوسپينو زرودتجارة لپاره تياروالی دی اودليل معتبردی نوکله چې دنمادليل موجود شونوداماِل نامی دی لهذاپه دي کې زکوة واجب دی.

**ف**: دامام شافعی رحمه الله په نزددښځينوپه ګاڼواودنارينه و دسپينوزروپه ګوتمی کې زکوة واجب دی ولې چې دکوم شي استعمال چې مباح وي اوهغه په عام ډول سره استعماليږي هم اونامی نه وي نوپه دي کې دروزمره داستعمال دجامو په شان زکوة واجب نه دی ،امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې سره

اوسپين زرچې په کوم شکل کې هم وي په دوئ کې خلقي نماموجوده ده کمامرلهذادوئ داستعمال په جاموباندي قياسول صحيح نه دي ولی چې داستعمال په جاموکې هيڅ قسم نماهم نشته .

ف:ښځې ته چې دپلار دکورنی له طرفه کوم زيوروركړل شوی وي دهغه زکوة په يخپله پرښځې فرض ده اوکوم چې دخسرګنی له طرفه ورکړل شوي وي که هغه دښځې په ملکيت کې ورکړل شوي وو نوپرښځه فرض دی که نه نو دهغې په خاوند .(فتاوی عثمانی:۲/۴۲)

ف:که له کومې ښځې سره دومره زيورات وو چې که هغه خرڅ کړي نوحجورباندې فرض کيږي ليکن له هغې سره نغدي بالکل نه وي نوپرداسې ښځه باندي حج ،زکوة ،اوقربانی فرض ده که نغدي روپۍ نه وي نوپريوڅه زيورخرڅ کړي اوپه هغوروپودي دافرائض اداء کړي .(فتاوی عثمانی:۲/۵۳)

(۴۴)قوله ثم فی کل خمس الخ خمس بضم الخاء دی دنصاب دپنځمې برخې په معنی ،ددووسوودرهمو پنځمه برخه څلويښت درهمه دي اودشلودينارونوپنځمه برخه څلوردیناره دي،يعنی دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدچې کله دراهم له دوه سوه څخه زيات شي نوپه زيادت کې هيڅ هم نه دي واجب ترڅوچې دزيادت مقدارڅلويښتودرهموته ورسيږي نوبياپه دي کې ربع عشريعنی څلويښتمه برخه واجبيږي ولی چې دنبی کريم ﷺ ارشاددی ليس فيمادون الاربعين صدقة (يعنی له څلويښتو درهموڅخه په لږوکې زکوة نشته)،همداراز په کسورو(يعنی دنصاب دمقدارونوپه منځ کې لکه له دوسوو څخه تردوو سووه څلويښتوپوري ،همداشان له هروڅلويښتوڅخه ترنوروڅلويښتوپوري )کې په زکوة واجبولوکې حرج دی اوحرج شرعاً مدفوع دی .

دصاحبينوپه نزدله څلويښتوڅخه په ليږزياتوالي کې هم زکوة شته نوکه په دوه سوه درهمه باندي يودرهم زيات شونوله پنځودرهموڅخه علاوه ديوه درهم له څلويښتوحصوڅخه يوه حصه بله هم واجب ده ،دصاحبينورحمهماالله دليل دادی چې زکوة دنعمت مال دشکرپه طورسره واجبيږي اوله دووسووڅخه لږهم مال دی لهذاپه هغه کې به هم دحساب مطابق زکوة واجب وي .

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی کمافی الفقه الاسلامی وادلته :اماالزيادة علی النصاب فلاشئ فيهاعندابی حنيفه رحمه الله حتی تبلغ اربعين درهمافيکون فيهادرهم ثم فی کل اربعين درهمادرهم ولاشئ فيمابينهما کذالک لازکوة فی زيادة الدنانير حتی تبلغ اربعة دنانير وهذاهوالصحيح عندالحنفية لقوله ﷺ من کل اربعين درهمادرهم (فقه الاسلامی وادلته:۳/۱۸۲۳)

(۴۵)دسپينو،اوسروزرودزکوة په اداء کولواودهغه په واجبيدلوکې ددوئ ددواړودوزن اعتباردی نه دقيمت ،مثلاکه دڅاپرذمه پنځه درهمه واجب وي نوهغه څلورښه آراسته شوي دکوموچې قيمت دپنځودرهمو برابروو اداء کړل نودده ذمه به فارغه نه وي بلکه يوبل درهم به هم اداء کوي ولی چې اعتباردوزن دی دقيمت اعتبارنشته ،همداشان که له چاسره سپين زرتردوپنځوس نيموتولوڅخه لږوي مګرله هغوڅخه دلوښويادزيور دجوړلوله وجه دهغوقيمت ددوپنځوس نيموتولو برابروي نوپرده زکوة واجب نه دی ولی چې دوزن اعتباردی نه دقيمت اووزن دلته دنصاب برابرنه دی .

## دسپينوزرو نصاب دګرام په اعتبارسره

ف:دموجوده اوزانو په لحاظ سره يوه توله د ۱۱،۶۶۴ګرامو سره برابره ده همداشان ددوپنځوس نيمو تولو وزن له ۶۱۲ګرامو او ۳۶۰ملي ګرامو سره مساوي دی،نن صباد۱۲ماشې (برابر۱۱،۶۶۴ ګرامو)په ځای د۱۰ګرامو توله مروجه ده په دي وجه ددي اصطلاح په اعتبارسره ۶۱تولې ۶۱۲ګرامه او ۳۶۰ ملي ګرامه دسپينوزرونصاب دی ،همداشان دسروزرو نصاب په دي حساب سره ۸۷،۴۸۰ګرامه دی کوم چې د۱۰ګرامو دتولې په لحاظ سره ۸تولې ۷ګرامه او ۴۸۰ملي ګرامه کيږي. (جديد فقهی مسائل:۱/۲۰۲)

(۴۶)وفي الدَّرَاهِمِ وَزْنُ سَبْعَةٍ وهو أَنْ تَكُونَ الْعَشَرَةُ منها وَزْنَ سَبْعَةِ مَثَاقِيلَ (۴۷)وَغَالِبُ الْوَرِقِ وَرِقٌ لَا عَكْسُهُ (۴۸)وفي عُرُوضٍ تِجَارَةٍ بَلَغَتْ نِصَابَ وَرِقٍ او ذَهَبٍ (۴۹)وَنُقْصَانُ النِّصَابِ في الْحَوْلِ لَا يَضُرُّ إنْ كَمُلَ في طَرَفَيْهِ (۵۰)وَتُضَمُّ قِيمَةُ الْعُرُوضِ إلَى الثَّمَنَيْنِ (۵۱)وَالذَّهَبُ إلَى الْفِضَّةِ قِيمَةً

**ترجمه**:اوپه دراهمو کې وزن سبعه متعبردی اوهغه دادی چې په دراهمو کې لس درهمه داومثقالو سره برابروي ،اوپه کومو کې چې سپين زرغالب وي هغه سپين زردي نه ددي عکس ،اوپه اسبابو دتجارت کې واجب دی کله چې هغه ورسيږي دسپينو ياسروزرو نصاب ته ،اونقصان نصاب دکال په منځ کې مضرنه دی که کامل وو په دواړو طرفونو کې ،اويوځای کيږي به داسبابو قيمت له ثمنينو سره ،اوسره زرله سپينوزرو سره دقيمت په اعتبارسره .

**تشريح**:(۴۶)قوله وفي الدارهم وزن سبعة اى المعتبر فى الدارهم وزن سبعة ،يعني په دراهمو کې وزن سبعه معتبردی يعني ددراهمو په وزن کې هغه وزن معتبردی کوم چې لس درهم داوودينارو سره مساوي وي ،اصلاً په ابتداء اسلام کې دري مختلف قسمه دراهم چليدل يو هغه کوم چې له دينارسره مساوي وو يعني لس درهم له لسو دينارو سره برابروو ،دوهم هغه کوم چې لس درهم له شپږو دينارو سره مساوي وو ،دريم هغه کوم چې لس درهم له پنځودينارو سره مساوي وو ،خلګو په دي دريو سره وزنو سره معاملې کولې ترڅو چې حضرت عمر ﷺ خليفه شو او هغه وغوښتل چې خراج او کوۀ په وزن عشره سره وصول کړي خلګو په دي کې دتخفيف غوښتنه وکړه حضرت عمر ﷺ دهغې زمانې دحساب ماهرين راجمع کړل ترڅو هغوئ ددي دريو وزنو په مخته اينبودلو سره يو منځنی وزن متعين کړي نوهغه ددريو سره اوزانو مثاقيل سره يوځای کړل نو هغه يوويښت شول بيايې دهغو ثلث راوخيست په دي ډول سره چې اوزان څرنګه چې دري وونو يوويښت مثاقيل چې کله په هغوئ تقسيم کړل نو هريوه ته اوه مثقاله ورسيدل يعني درميانه وزن داجوړشو چې لس درهمه داوومثقالو سره برابروي، همدي ته وزن سبعه ويل کيږي په کوم چې دصحابه کرامو ﷺ اجماع ده .

ف:مثقال اودينار دوزن په اعتبارسره يو شی دي،مثقال شل قيراطه وي اودرهم دڅوارلسو قيراطو مساوي وي ،اوديوه قيراط وزن پنځه اوربشې دی ،په دي ډول سره ددينارو وزن سل اوربشې اوددرهم وزن له اويااوربشوسره برابردی کمافى الدر المختار:والدينار عشرون قيراطاوالدرهم اربعة عشر قيراطاوالقيراط خمس شعيرات فيكون الدرهم الشرعى سبعين شعيرة والمثقال مائة شعيرة فهو درهم وثلاث اسباع درهم،قال ابن عابدين ﷫:(قوله والدينار)..........حاصله ان الدينار اسم للقطعة من الذهب المضروبة المقدرة بالمثقال فاتحادهما من حيث الوزن (الدر المختار مع الشامية: ۲/۳۱)

ف :ورق دواو په فتحه او دراء په كسره سره آراسته شوي سكې ته ويل كيږي، اوغش دغين په كسره او دشين په تشديد سره كوټ يعنى له سرو او سپينو زورو ماسوا بل معدنى شې ته ويل كيږي، دابايد په ياد وساتل شي چې دسپينو زرو يا سروزرو سكه دكوټ له ګډولو څخه بغيرنه جوړيږى په دي وجه دسپينو او سروزرو په سكو كې دكوټو ګډول ضروري دي .

(۴۷)اوس صورت مسئله دادى چې په اراسته شوي سكه كې كه سپين زرغالب وو اوكوټ مغلوب وو نو هغه سكه دسپينو زرو په حكم كې ده اعتبار اللغالب اوپه دي كې دسپينو زرو زكوة واجب دى اوكه كوټ غالب وو اوسپين زر مغلوب وو نو داسكې دسامان په حكم كې دي اعتبار اللغالب نو كه دتجارت نيت وو اوددوئ قيمت نصاب ته رسيدونو په دوئ كې به دنورو عروض تجارت په شان زكوة واجب وي ،دداسې سروزرو هم همدا حكم دى چې په هغو كې كوټ ګډ شوي وي .

(۴۸)قوله ولي عروض تجارة بلغت نصاب ورق اوذهب اى يجب ربع العشر في عروض تجارة بلغت نصاب ورق اوذهب،

عروض دعرض جمع ده له سپينو او سروزرو څخه ماسوانورسامان ته ويل كيږي دعروضو دزكوة بيان يې له نقدينو څخه مؤخركړځكه چې نقدين اصل دي ولي چې په نقدينو سره ددوئ په قيمت كولو ددوئ نصاب معلوميږي .يعنى دتجارة سامان خواه كه هرقسم وي په هغه كې ربع عشر يعنى څلويښتمه حصه زكوة واجب دى په دي شرط چې دهغه قيمت دسپينو يا سروزرو نصاب ته رسيږي اومالک په هغه كې دتجارت نيت كړى وي لقول ابن عمر رضي الله عنه قال ليس في العروض زكوة الااذاكان للتجارة (يعنى په عروضو كې زكوة نشته الادا چې دتجارت لپاره وي ).

ف :دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد به دسامان تجارت دقيمت اندازه په سرو او سپينو زرو كې په هغه سره لګول كيږي په كوم كې چې دفقراء اومساكينو نفع وى مثلا دتجارت څه سامان دى دكوم قيمت چې دوه سوه درهمو ته رسيږي مګرشل مثقاله ته نه رسيږي نو دادي په دراهمو سره اندازه كړي اوكه ددي عكس وو چې ددي سامان قيمت شل مثقاله سروزروته رسيدومګر ددووسوو درهمو ماليت ته نه رسيدو نو دده دقيمت اندازه دي په سروزرو سره ولګول شي نه په سپينو زرو سره، امام ابو حنيفه رحمه الله داقول دفقراء درعايت له وجهي كړى دى .

ف :امام ابويوسف رحمه الله فرمايي چې عروض يې په كوم شي سره اخيستي وي په هغه شي سره دي قيمت كوي اوكه يې په روپونه وو اخيستى نو بيا دي په هغه نقدى سره قيمت كړي دكوم چې په هغه ښاركې رواج زيات وي ،امام محمد رحمه الله فرمايي چې په هرحال دي په هغه سره قيمت كړي دكوم چې په هغه ښاركې راج زيات وي ،دامام ابو حنيفه رحمه الله قول راجع دى لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد:وظاهرالهداية الاختلاف بين الاقوال المذكورة وليس كذالک بل هو مخير في التقويم بماشاء من الدراهم والدنانير والنقد الغالب وبالذى اشتراه به لكن ويراعى الانفع منها على كل حال فان كان المال لايبلغ نصابا لابالدراهم ولابالدنانير ويبلغ بالنصاب بالذى اشتراه اوبنقدالغالب فالتقدير بماهو الانفع (هامش الهداية ۱/۱۷۸:)

(۴۹)يعنى كه له چاسره دكال په شروع كې هم پوره نصاب موجود وي اودكال په اخركې هم پوره نصاب موجود وي البته دكال په منځ كې مال له مقدارنصاب كم شوى وي نو په دي صورت كې زكوة واجب

دی ساقط نه دی ولی چې دکال په منځ کې دنصاب دپوره والی په اعتبارکولو کې مشقت دی ولی چې مالک په خپل مال کې تصرف کوي دکوم له وجه چې مال کله کميږي اوکله زياتيږي ځکه نودکال په مابين کې دنصاب دپاته کيدلو شرط نه ده لګول شوی .

ف:البته که دکال په مابين کې ټول نصاب هلاک شوی وو نوزکوة واجب نه دی ځکه چې دکال په يوه حصه کې نصاب بالکليه نه وونودحولان حول شرط نه شوپرځای حال داچې دزکوة دوجوب لپاره حولان حول شرط دی کماقال ابن عابدين: (قوله فلوهلک کله )ای فی اثناء الحول بطل الحول حتی لواستفادفيه غيره استانف له حولاجديدا(ردالمحتار:۲/۳۶)

(۵۰)يعنی که له يوچاسره سامان تجارت بقدرنصاب نه وي البته له ده سره څه سره ياسپين زروي نودسامان تجارت قيمت به له دي سپينويا سروزروسره يوځای کړي اونصاب به پوره کړي ،همدا شان که مختلف الجنس سامان تجارت وي نوهم دتکميل نصاب لپاره به دبعضو قيمت له بعضوسره يوځای کړي ولی چې په هرشي کې دوجوب زکوة سبب دنصاب نامی والی دی اونماء په هرقسم سامان تجارت کې هم شته اوپه سپينواوسروزروکې هم شته لهذادسامان تجارت قيمت به له سپينواوسرو زروسره په يوځای کولوسره زکوة واجب وي .

(۵۱)قوله والذهب الی الفضة قيمة ای ويضم الذهب الی الفضة قيمة ،يعنی که له يوچاسره نه دسروزروپوره نصاب وي اونه دسپينوزرو البته له دواړوڅخه دهريوه ترنصاب لږموجودوي نوکه ددواړوپه يوځای کولوسره يونصاب جوړيدونوپه دي صورت کې زموږپه نزدددواړوپه يوځای کولوسره زکوة واجب دی ولی چې په سپينواوسروزروکې که څه هم دذات په اعتبارسره اتحادنشته مګردوصف ثمنيت په اعتبارسره دواړه متحددي اوهمدا وصف ثمنيت دوجوب زکوة سبب دی نوداتحادوصف له کبله به يوله هغه بل سره يوځای کيږي .

ف:بيادامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدبه نقدين دقيمت په اعتبارسره يوله هغه بل سره يوځای کوي . اودصاحبينو رحمهما الله په نزدبه داجزاءپه اعتبارسره ضميږي ،ثمره اختلاف يې په دي مثال سره ښکاريږي چې له يوچاسره سل درهمه سپين زردي، پنځه مثقاله سره زردي اودپنځو مثقالوسروزور قيمت سل درهمه ته رسيږي نوددواړوپه قيمت کولوسره ګواکی له دي کس سره دوه سوه درهمه دي نوباعتبارقيمت دنصاب دپوره کيدلوپه وجه سره دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپرده زکوة واجب دی،مګر داجزاءوپه اعتبارسره ځرنګه چې نصاب پوره نه دی ولی چې دسپينوزرونصف نصاب اودسروزروربع نصاب دی دواړوپه يوځای کولوسره پاوکم يونصاب جوړيږي لهذادصاحبينورحمهما الله په نزدزکوة واجب نه دی ،اوکه چاسره لس مثقاله سره زراوسل درهمه سپين زروي اودلس مثقالوسروزروقيمت له سل درهمه سره برابروي نوبالاتفاق پر ده زکوة واجب دی ولی چې په دي صورت کې دقيمت په اعتبارسره هم نصاب پوره دی اوداجزاوپه اعتبارسره هم پوره دی.

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی ليکن دصاحبينوقول ارفق بالناس دی لهذاپه ننی زمانه کې دصاحبينوپه قول بايد فتوا وركړل شي خاص کرداضحيه په مسئله کې دښځوپه حق کې دصاحبينوپه قول په

فتوا وركولو كې ډيرسهولت دى كما في القول الراجح: والفتوى على قوله موافق لاصول الافتاء لان الاصل في العبادات الفتوى على قول ابي حنيفة لكن قولهما ارفق للناس لان على قول ابي حنيفة يصير نصاب الذهب تابعا لقيمة الفضة مع ان القيمة تابع للذهب والفضة في تعين النصاب وايضا في صورة الذهب والعروض يكون النصاب تابعا للمعدوم وهو الفضة، واما على قولهما فيكون القيمة تابعا للذهب والفضة ولا يكون الموجود تابعا للمعدوم وان قولهما ارفق بالناس فينبغي ان يفتى بقولهما في هذا الزمان وخصوصا في مسئلة الاضحية ترفقا بالنساء لان اكثر النساء يوجد معهن شئ من الذهب وهو يساوى نصاب الفضة باعتبار القيمة وهن لا يستعدن لبيع الذهب ولشراء الاضحية واذا كان الانضمام بالاجزاء فحينئذ يكون الحكم اسهل عليهن وقول الامام قول المتون. (القول الراجح: ۱/۱۷۴)

## بَابُ الْعَاشِرِ

### داباب دزكوة وصول كونكي په بيان كې دى

عاشرځرنگه چې له مسلمان څخه هم زكوة اخلې اوله غيرمسلم څخه هم، اوله مسلمان څخه اخيستى عشربعينه زكوة دى په دې وجه ددې باب له باب زكوة سره يو قسم مناسبت شته مگرځرنگه چې له عاشر له غيرمسلمانانو څخه هم عشر اخلې اوله غيرمسلمانانو څخه اخيستى عشرزكوة او عبادت نه دى په دې وجه داله باب زكوة څخه مؤخر كړولى چې زكوة محض عبادت دى او په دې كې دغيرګډوالى هم شته.

(۵۲) هو من نصبه الإمام ليأخذ الصدقات من التجار (۵۳) فمن قال لم يتم الحول او عليّ دين او أديت أنا او إلى عاشر آخر وحلف صدق (۵۴) إلا في السوائم في دفعه بنفسه (۵۵) وكل شيء صدق فيه المسلم صدق فيه الذمي (۵۶) لا الحربي إلا في أم ولده

**ترجمه**: عاشرهغه دى كوم چې امام مقرركړې ترڅوچې له تجارانو څخه زكوة وصول كړي، نوكوم كس وويل چې تراوسه كال نه دى پوره شوى يا پرما قرض باندې دى يا ما پخپله اداء كړى دى يا مې بل عاشرته وركړى دى او قسم وكړي نو دهغه تصديق به كول كيږي، مگرنه په څارويو كې دپخپله وركولو په صورت كې، او په كوم كې چې د مسلمان تصديق كول كيږي په هغه كې به د ذمي هم تصديق كول كيږي، نه د حربي كافر مگر دده دام ولد په باره كې.

**تشريح**: (۵۲) دحكومت له طرفه چې كوم كس په لاروباندې ددې لپاره مقرروي چې هغه دتجارانو حفاظت وكړي اوله تجارانو څخه محصول وصول كړي هغه ته عاشرويل كيږي هسې خو دعاشرمعنى ده لسمه حصه وصول كونكى مگردلته له عاشرڅخه مراد هغه شخص دى كوم چې محصولات وصول كوي هغه له مختلف تجارانو څخه مختلف مقداروصول كوي له چاڅخه (له مسلمان څخه) دعشرڅلورمه، له چاڅخه (له ذمي څخه) دعشرنصف اوله چاڅخه (له حربي كافرڅخه) بيا مكمل عشروصول كوي نو ځرنگه چې په دې ټولو كې دعشرلحاظ شته په دې وجه ددې وصول كونكى ته عاشرويل كيږي.

**ف**: دحكومت په واسطه سره په زكوة يا عشراداء كولو كې څه حرج نشته ليكن دمروجه نظام زكوة دخاميانو په نظركې لرلوسره دا اندازه لګول په هيچاهم مخفي نه ده چې عموما په اصل مصرف باندې زكوة نه مصرفيږي په دې وجه يې دوهم ځل اعاده كول بنه كاردى. (حقانيه: ۳/۵۶۹)

(۵۳) كه كوم تاجرعاشرته وويل چې زما پردې مال باندې تراوسه پورې كال نه دى پوره شوى ځكه نوپردې مال زكوة نشته، يا يې وويل چې زه مقروض يم ځكه نوپردې مال زكوة نشته نو تاجرته به قسم وركول

كيږي كه ده قسم واخيستى نو دده تصديق به كول كيږي او عاشر به له ده څخه زكوة نه وصول كوي ولى چې تاجر له وجوب زكوة څخه منكر دى او قول د منكر مع اليمين معتبروي، همداشان كه تاجروويل مابل عاشرته زكوة وركړى دى حال دا چې په دي كال د وهم عاشر هم متعين وي نو بيا به هم دده قول مع اليمين معتبروي ولى چې ده دامانت په خپل محل كې د مصرفولو دعوه وكړه او د داسې چا قول مع اليمين معتبروي.

ف: او كه څوكاله وروسته دا ښكاره شوه چې مزكى عاشرته دروا‌غ ويلي وو نوله ده څخه به د تيرشوو پولو كالونو زكوة اخيستل كيږي كمافى الدرالمختار: ولوظهر كذبه بعدسنين اخذت منه وقال ابن عابدين: (قوله اخذت منه) لان حق الاخذثابت فلايسقط باليمين الكاذبة. (الدرمع الشامية: ۲/۳۳)

ف: همداشان كه تاجروويل چې ما په ښاركې فقيرته زكوة وركړى دى لهذا زما پرمال زكوة نشته نو هم به دده قول مع اليمين معتبروي ولى چې په ښاركې مالک نصاب ته د دراهمواودنانيرووغيره د زكوة اداء كولو ولايت حاصل دى كمافى الدرالمختار: (او) قال (اديت الى الفقراء فى المصر وحلف صدق) فى الكل بلااخراج براءة فى الاصح وقال ابن عابدين: (قوله او قال اديت الى الفقراء فى المصر) لان الاداء مفوضا اليه فيه (الدرالمختار مع الشامية: ۲/۳۳)

ف: په دي دوركې دبعضو مصالحو په بنياد حكومتونه د ځينو شيانو له باهرڅخه په راوړلو يا باهرته په وړلو پابندي لګوي مګر څه خلک په پټه سره ممنوعه شيان وړي راوړي كوم ته چې سمګلنګ ويل كيږي، د سمګلنګ (ګريزي) حكم دا دى چې كه حلال مال وونو په شرعى اعتبار سره جائزدى ليكن څرنګه چې حكومت پرې پابندي لګولي ده د دي پابندي دخلاف ورزى په صورت كې د ډيروګناهونوارتكاب ته ضرورت پيښيږي مثلا اكثر دروا‌غو ويلو ته ضرورت پيښيږي، رشوت ته ضرورت پيښيږي، يا عزت او ابروپه خطره كې اچول كيږي د كوم د حفاظت چې په شريعت كې ډير خيال ساتلى شوى دى او ډير وختونه د قيد او بند سختيو برداشتولو ضرورت پيښيږي په دي وجه د حكومت د قانون پابندي كول په كار دي او له داسې كاربار څخه ځان ساتل په كار دي خو بيا هم په اسمګل (ګريزي) طريقه سره راغلي حلال او مباح شيانو خرڅول او اخيستل جائزدي او هغه استعمال جائزدي او ګټه يې هم حلاله ده. (جديد معاملات كى شرعى احكام: ۱/۱۰۵)

(۵۴) قوله الا فى السوائم فى دفعه بنفسه اى لايصدق فى السوائم فى دفعه بنفسه، يعنى كه د څارويو مالک وويل چې ما د څارويو زكوة په ښاركې فقيرانو ته وركړنو په دي صورت كې به د هغه تصديق نه كول كيږي. امام شافعى رحمه الله فرمايي چې څرنګه چې حق مستحق ته رسول شوى دى لهذا د ده تصديق به هم كول كيږي. زموږ دليل دا دى چې د څارويو زكوة وصول كول د امام المسلمين حق دى لقوله تعالى ﴿ خذمن اموالهم صدقة ﴾ واخله د دوئ له مالونو څخه صدقه) نو مالک لره د ده د حق د باطلولو حق نشته.

(۵۵) په كوموصورتونو كې چې د مسلمان د قول اعتبار كيده په هغو صورتونو كې به د ذمى د قول اعتبار هم كيږي ولى چې ذمى په دار الاسلام كې د معاملاتو په باره كې د مسلمانانو په شان دى البته كه هغه دا دعوه كوله چې ما جزيه په ښاركې پخپله ذمى فقيرانو ته اداء كړه نو دده تصديق به نه كيږي ولى چې ذمى فقيران د جزيې مصرف نه دي.

(۵۶) قوله لاالحربی الافی ام ولده ای لایصدق الحربی فی شئ مماذکر الافی ام ولدله قال هذه ام ولدی فانه یصدق ، یعنی په پورته ذکرشویو صورتونو کې به د حربی تصدیق نه کیږي ولی چې له ده څخه چې اخیستل کیږي هغه د سلطان له طرفه د ده د مال د حفاظت په خاطر اخیستل کیږي او د ده په لاس کې چې څه دي هغه د حفاظت محتاج هم دي لهذا حق حفاظت یعنی عشربه هم له ده څخه ضرور اخیستل کیږي او داچې دی کوم عذر وړاندي کوي مثلاً وایي چې زما پر مال باندي کال نه دی پوره شوی یازه مقروض یم نو د دي اعتبار به نه کیږي ولی چې عاشر له ده څخه د ده د مال د ساتنی بدله اخلي د کوم لپاره چې حولان حول او غیر مقروض والی ضروري نه دي ،هو که له حربی سره مینځه وه او ده دعوه وکړه چې دا زما ام ولد ده نو د ده تصدیق به کیږي ځکه چې د ده حربی والی له استیلاد سره منافی نه ده نو کله چې موږ د ده تصدیق وکړ نو له مینځې څخه د مالیت صفت ختم شو او عشر خو له مال څخه اخیستل کیږي لهذا په دي مینځه کې زکوة نشته .

(۵۷) وَأَخَذَ مِنَّا رُبُعَ الْعُشْرِ وَمِنَ الذِّمِّيِّ ضِعْفَهُ وَمِنَ الْحَرْبِيِّ الْعُشْرَ (۵۸) بِشَرْطِ نِصَابٍ وَأَخْذِهِمْ مِنَّا (۵۹) وَلَمْ يُثَنِّ فِي حَوْلٍ بِلَا عَوْدٍ (۶۰) وَعُشِّرَ الْخَمْرُ لَا الْخِنْزِيرُ (۶۱) وَمَا فِي بَيْتِهِ وَالْبِضَاعَةُ (۶۲) وَمَالُ الْمُضَارَبَةِ وَكَسْبُ الْمَأْذُونِ (۶۳) وَثُنِّيَ إِنْ عَشَرَ الْخَوَارِجُ

**ترجمه**: او اخلي به له موږ څخه څلویښتمه برخه او له ذمي څخه د دي دوچنده او له حربی څخه به لسمه حصه ،په دي شرط چې نصاب پوره وي او هغوئ یې هم زموږ څخه وړي ،او دوهم ځل به نه اخیستل کیږي په کال کې بې له راګرځیدلو ، او عشر به اخلي د شرابو نه د خنزیر ،او د هغه چې د ده په کورکي وي او د بضاعت د مال ،او د مضاربة د مال او د غلام د ګټې ،او دوهم ځل به عشر اخیستل کیږي که خارجیانو عشر ځیني اخیستی وو .

**تشریح**: (۵۷) عاشربه له موږ څخه (له مسلمانانو څخه) په زکوة کې ربع عشر یعنی څلویښتمه حصه اخلي او له ذمی کافر څخه د دي دوچنده یعنی شلمه حصه اخلي ،او له حربی کافر څخه به لسمه حصه اخلي ولی چې حضرت عمر ﷺ خپلو عاشرانو ته د همدي مقدار د اخیستلو حکم فرمایلی وو .

**ف**: البته له حربی څخه به عشر هغه وخت اخیستل کیږي چې موږ ته معلوم نه وي چې په دار الحرب کې زموږ له تجارانو څخه څومره اندازه اخلي او که هغه مقدار کوم چې دوئ زموږ څخه اخلي معلوم وي نو موږ به هم له دوئ څخه هغه مقدار اخلو کما فی شرح التنویر: (و) بشرط (جهلنا) قدر (مااخذو منافان علم اخذمثله) مجازاة الااذااخذواالکل. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۲/۳۵)

(۵۸) قوله بشرط نصاب واخذه منا ای اخذمن الحربی العشر بشرط بلوغ ماله نصابا وبشرط اخذهم من تجارنا ،یعنی له حربی څخه به هغه وخت عشر اخیستل کیږي چې نصاب پوره وي ولی چې لږ مال د حفاظت محتاج نه دی ولی چې داکولږ مال نه وړي لهذا په لږ مال کې به عشر هم نه وي ،او دا هم شرط ده چې په دار الحرب کې به هغوئ زموږ له تجارانو څخه مال ګذاری اخلي که نه نو له دوئ څخه به هم نه اخیستل کیږي ولی چې دښو اخلاقو موږ ډیر حقدار یو ،او که هغوئ زموږ له تجارانو څخه ټول مال اخیستو نو موږ به له دوئ څخه ټول مال نه اخلو بلکه دومره مال به له ده سره پریږدو چې د ده د سفر تو بنه شي .

(۵۹) او له حربی څخه به په یوه کال کې دوه ځله عشر نه وړل کیږي ولی چې له ده څخه د ده د مال د حفاظت په خاطر موږ عشر اخلو نو که هر ځل دی په عاشر تیریدو او عاشر له ده څخه عشر و اخلي نو د مال ستیصال دی نه حفاظت لهذا د کال په د ننه کې به دوهم ځل عشر نه اخیستل کیږي .البته که هغه د کال په منځ

کې دارالحرب ته ولاړې نو په بیرته راتګ سره به له ده څخه عشر اخیستل کیږي ولی چې دارالحرب ته په تلو سره دده مخکنی امان پای ته ورسیدی اوس دی له نوي امان سره راغلی دی نو ددي جدید امان له وجه به له ده څخه دوهم ځل عشر اخیستل کیږي.

(۶۰)قوله وعشرالخمرلاالخنزیرای یؤخذعشرالخمرولایعشرالخنزیر،یعنی که کافرسره له شرابوپه عاشر تیریده نوعاشربه له ده څخه دشرابو عشروصول کوي ولی چې عشر دشرابو د حفاظت له وجه اخیستل کیږي او مسلمان دخپلو شرابو څخه دسرکې جوړلوپه نیت سره حفاظت کولی شي نودنورو دشرابو حفاظت هم کولی شي لهذا بعوض حفاظت به له حربي څخه دشرابو عشر اخلي ،اوکه کافرسره له خنزیره په عاشرتیریده نوعاشربه دخنزیرعشرنه اخلي ولی چې مسلمان دخپل خنزیر حفاظت نشي کولی بلکه خنزیربه پریږي دي نودنورودخنزیرانوحفاظت هم نه شي کولی نوچې حفاظت نشته نوعشربه دکوم شي وصول کوي.

(۶۱)قوله ومالی بیته والبضاعة ای لایعشر ایضامالی بیت العارمن المال ولایعشر البضاعة ،یعنی که دچاپه کورکې مال وو کوم چې نصاب ته رسیدلی وو اوپرهغه کال هم پوره شوی وو نوبیابه هم عاشرله ده څخه ددي مال عشرنه اخلي ولی چې عشربعوض حمایت او حفاظت اخلي اوپه کورکې په موجود مال کې حمایت او حفاظت نشته لهذا دهغ عشربه هم نه اخلي ،همدشان دمال بضاعت (مال بضاعت هغه دی چې مالک یوچاته روپی ورکړي اوهغه په دي کې تجارت کوي اونفع ټولو دمالک وي )عشربه هم نه اخلي ولی چې دمالک له طرفه دي کس ته صرف دتجارت اجازت شته دزکوة ورکولو اجازه نشته لهذا دمالک له طرفه دنه اجازت له کبله به زکوة نه اداء کیږي.

(۶۲)قوله ومال المضاربة وکسب الماذون ای ولایعشر مال المضاربة ولاکسب العبدالماذون له فی التجارة .یعنی عاشربه له مضارب څخه دمال مضاربت (مضاربت دادی چې یوکس بل کس ته څه روپی ورکړي چې په دي تجارت وکړه کومه نفع چې حاصله شي هغه زموږ دواړو په مابین کې مشترکه وي ،اوتجارت کونکی ته مضارب ویل کیږي)عشرهم نه اخلي .له مال مضاربت څخه مراد رأس المال دی ولی چې مضارب نه درأس المال مالک دی اودزکوة په اداء کولو کې دمالک نائب دی لهذا مضارب لره زکوة اداء کول صحیح نه دي ،همداشان عاشربه دماذون غلام (هغه غلام کوم ته چې مولی دتجارت کولو اجازه ورکړي وي )له کسب څخه هم عشرنه اخلي ولی چې داشان غلام دمضارب په شان نه دمال مالک وي اونه دزکوة به اداء کولو کې دمالک نائب وي.

(۶۳)قوله وثنی ان عشرالخوارج ای ویؤخذالعشرثانیاان عشرالخوارج ،یعنی که له یومسلمان تاجرڅخه دخوارجوعاشرعشر اخیستی وو بیاداکس داهل حق په عاشرتیریدونوله دي تاجرڅخه به دوهم ځل زکوة اخیستل کیږي ولی چې داکوتاهي خپله دتاجرله طرفه شوي ده چې ده په هغه ځای کې له ځان سره مال وړی دی.

ف:له دی څخه وراندي په زکوة السوائم کې ویل شوي وو چې که باغیانو له تاجرڅخه عشرواخیستی نوامام المسلمین به له ده څخه دوهم ځل عشرنه اخلي دلته دهغه برعکس ویل شوی دي چې دوهم ځل به عشراخلي

،په دواړو ځايونو کې فرق دادی چې په دې ځای کې کوتاهی دامام له طرفه نه ده بلکه پخپله دتاجر له طرفه ده
چې خپل مال يې دباغيانو علاقې ته وړی دی حال داچې په هغه مخکنی ځای کې کوتاهی دامام له طرفه ده
چې باغيانو ته يې دقبضه کولو موقع ورکړې وه په دې وجه په هغه ځای کې وويل شول چې له تاجر څخه به
دوهم ځل عشر نه اخلې.

## بَابُ الرِّكَازِ

داباب درکاز دزکوة په بيان کې دی

اصلا دلته دري لفظونه دي معدن ،کنزاورکاز ،معدن هغه مال دی چې الله ﷻ دځمکې دپيداکولو په وخت
کې په ځمکه پيداکړی وي ،اوکنزهغه مال دی کوم چې انسانانو په ځمکه کې ښخ کړی وي اورکاز
کنزاومعدن دواړو ته شامل دی ولی چې رکاز دمرکوز په معنی سره دی يعنی په ځمکه کې ښخ کړل شوی که
ښخونکی خالق وی اوکه مخلوق وي.

هــی خومناسب داوو چې باب رکاز يې په کتاب السير کې ذکرکړی وای ولی چې له رکاز څخه چې
څه اخيستل کيږي هغه زکوة نه دی اودده مصرف هم هغه دی کوم چې دغنيمت دمال مصرف دی
مگرفقهاوداله کتاب الزکوة سره ملحق کړی دی ولی چې دواړه مالی وظيفي دي ،بيا له يې باب العشر څخه
مقدم کړ ځکه چې رکاز محض قربت دی اوعشرکله له تغلبی څخه هم اخيستل کيږي په کوم کې چې دقربت
معنی نشته له دی وجه يې رکاز تر عشر مخته ذکرکړ.

(۲)خمس معدن نقد ونحو حديد في أرض خراج أو عشر (۲۵) لا داره وأرضه (۲۶) وكنز (۲۷) وباقيه للمختط له ونيق (۲۸) لا ركاز دار حرب (۲۹) وفيروزج ولؤلؤ وعنبر

**ترجمه**: پنځمه حصه به اخيستل کيږي دنقدو (سرواوسپينوزرو) اوداورسپينې په شان شيانوپه کان کې په
خراجي يا عشري ځمکه کې ،نه دده په کورکې اونه دده په ځمکه کې ،اودخزانې ،اوباقی دمختط له پاره
دی اودپاره (پنځمه حصه به اخيستل کيږي) نه ددارالحرب په کان کې ،اوپه فيروزه کې اوپه ملغلروکې
اوپه عنبروکې.

**تشريح**: (۶۴)که يو چا له نقدين يعنی د سرو اوسپين زرويا اورسپينې وغيره کان په لاس ورغی که خراجی
ځمکه وي که عشری ځمکه وي نوپه دې که به خمس (پنځمه حصه) اخيستل کيږي ﴿لقوله ﷺ وفي الركاز الخمس
﴾(يعنی په رکاز کې خمس دی)،همداراز له اسلام څخه وړاندې ټولې ځمکې دکفاروپه قبضه کې وې
مسلمانانوپه هغوئ قبضه وکړه اوهغه يې له معدنياتوسره په غنيمت حاصلې کړې اودغنيمت په مال کې
پنځمه حصه دالله تعالی وي په دې وجه به په معادنو کې هم پنځمه برخه دالله تعالی لپاره واجب وي.

**ف**: معدن په دري قسمه دی (۱)جامد ،کوم کې ويلې کيږي لکه سره زر ،سپين زر ،اورسپينه اوپيتل وغيره
(۲)جامدکوم چې نه ويلې کيږي لکه چونه ،رانجه ،مالگه وغيره (۳)غيرجامد ،لکه ډيزل ،پيټرول وغيره ،په
اولنی قسم کې خمس واجب دی اوپه پاتې دووقسمونو کې هيڅ هم واجب نه دي.

(۶۵) قوله لافي داره وارضه اى لايخمس معدن وجد في داره وارضه ،يعني كه چاپه خپل كوركې معدن پيدا كړنو په دې كې دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد خمس نشته ولې چې معدن دځمکې له اجزاء څخه دى نو لکه څرنگه چې ځمکې په نورو اجزاءوكې خمس نشته نو په معدن كې به هم نه وي ،همداشان كه معدن دچاپه مملوكه ځمكه كې وونو په دې كې هم خمس نشته لماقلنا.

ف: پورته ذکرشوى قول دامام ابو حنيفه رحمه الله دى او دصاحبينو رحمهما الله تعالى په نزد كه ځمكه مملوكه وي اوكه مباح وي نو په معدن كې يې خمس شته اوهمدا قول راجح دى لماقال ابن عابدين الشامي رحمه الله :وفي الارض المملوكة روايتان عن ابي حنيفة رحمه الله فعلى رواية الاصل لافرق بين الارض والدار حيث لاشئ فيهما وعلى رواية الجامع الصغير بينهما الفرق ووجهه ان الدار لامؤنة فيها اصلافلم تخمس فصار الكل للواجد بخلاف الارض فان فيهامؤنة الخراج والعشر فتخمس لكن في الهداية ذكر وجه الفرق بين الارض والدار على رواية الجامع الصغير ولم يذكر وجه رواية الاصل وربمايشعر هذا باختيار رواية الجامع وفي حاشية العلامة نوح ان القياس يقتضي ترجيحها لامرين الخ (ردالمحتار: ۲/۵۰)

(۶۶) قوله وكنزاى خمس كنز ايضا ،پر معدن باندې عطف دى له دى وجه مرفوع دى ،يعني كه چامدفون (ښخ كړل شوى) مال وموندكوم ته چې كنزويل كيږي نوله ده څخه به هم خمس اخيستل كيږي لقوله ﷺ وفي الركاز الخمس (په ركازكې خمس دى) او دركاز اطلاق پر كنزهم كيږي كمامر.

ف: په مدفون مال كې كه داسلام كومه نښه وموندل شوه مثلاً پرهغه كلمه شهادت ليكل شوي وه نو دادلقطې په حكم كې دى په دې كې خمس نشته بلكه په خلگوكې به اعلان كيږي كه ددې مالک وموندل شونوهغه ته به يې وركړي اوكه مالک ونه موندل شونوكه موندكى په خپله فقيروي نوهغه يې پخپله مصرفولى شي كه نه نو فقيرانوته دې وركړي اوكه په كنزكې دكفرعلامه وموندل شوه مثلاً پرده دبت تصويروو نوكه په غيرمملوكه ځمكه كې وو نوپه دې كې يوخمس واجب دى پاتې نور څلور اخماس دطرفينو په نزد دمالک دى او دامام ابويوسف په نزد دموندكى دي فتوى دامام ابويوسف رحمه الله پر قول ده كمافي الشامية:وقال ابويوسف رحمه الله الباقي للواجد كمافي ارض غيرمملوكة وعليه الفتوى قلت وهو حسن في زماننالعدم انتظام بيت المال.(ردالمحتار: ۲/۵۱)

ف: اوكه داسلام اودكفر كومه علامه نه وونو يوقول دادى چې دابه دجاهليت دزمانې ښخ كړاى شوي گڼل كيږي ولې چې اصل دورز جاهليت دى اسلام وروسته پرې غالب شواويوقول دادى چې دابه اسلامي دفينه (ښخ كړاى شوي) گڼل كيږي ولې چې زمانه ډيره تيره شوي ده لهذا اوس دادجاهليت دفينه نه شي گڼل كيداى ليكن صحيح دادى چې داد جاهليت ددورد فينه (ښخ كړاى شوي) ده كمافي الهندية :ولو اشتبه الضرب بان لم يكن فيه شئ من العلامات يجعل جاهليافي ظاهر المذهب (هندية: ۱/۱۸۵) وقال ابن الهمام :لان مدفون اهل الجاهلية يوجد بديارنا اليوم مرة بعد اخرى (فتح القدير: ۲/۱۸۳)

(۶۷) يعني دمملوكې ځمكې له كنز څخه له خمس اخيستلو وروسته باقي څلوربرخې دمختط له دى (مختط له هغه كس ته ويل كيږي چاته چې بادشاه داځمكه ددې ملک دفتح كولو په وخت كې وركړى وي اوپه خط كشولوسره يې ده ته ددې طول اوعرض ورمتعين كړى وي) ولې چې له ملک فتح كيدلو څخه وروسته په دې ځمكې ترټولو دمخه قبضه دهمدې مختط له شوي ده اوحال دادى چې دا خصوصي قبضه ده لهذا كه څه هم داقبضه صرف پرظاهر باندې ده مگرمختط له ددې دباطن مالک هم جوړيږي داداسې شوه

لکه یوڅوک چې داسې ماهي ښکار کړي چې دهغه په نس کې ملغلره وي نود ماهي په خرڅولوسره هم ملغلره دده له ملک څخه نه وځي ولې چې ملغلره دماهي په نس کې امانت ده.

ف:لوړذکرشوی دطرفينومسلک دی دامام ابويوسف رحمه الله په نزدباقي څلوراخماس دموندونکی دي اوفتوی هم پرهمدي قول ده کمافی الشامية :وقال ابويوسف رحمه الله الباقی للواجدکمافی ارض غيرمملوكة وعليه الفتوی قلت وهوحسن فی زماننالعدم انتظام بيت المال(ردالمحتار: ۲/۵۱)

قوله وزيبق ای خمس زيبق ايضا،زيبق مرفوع دی پرمعدن باندی عطف دی ،يعنی دامام ابوحنيفة رحمه الله اخری قول دادی چې په معدني پارې کې هم خمس شته اوهمدادامام محمد رحمه الله قول هم دی ولې چې داپه اصل کې ډبره ده دکومې له پخيدلو څخه چې زيبق ويلې بهيږي نوداله پيتل سره مشابه شوه ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزدپه زيبق کې خمس نشته ولی چې زيبق له ځمکې څخه راوځي اومائع شې دی نوله ډيزلووغيره سره دمشابهت له کبله په دي کې خمس نشته.

(۶۸)قوله لاركاز دارحرب ی لايخمس ركاز دارحرب وجده مستامن فيها،يعنی په دارالحرب کې کوم مسلمان مستامن معدن وموندنوپه دي کې خمس نشته ولی چې دامال غنيمت په معنی کې نه دی له دې وجه چې مال غنيمت خوهغه وي کوم چې دکفاروپه قبضه کې وي بيامسلمان پرهغه غالب شې اوقبضه پرې وکړي ،ښکاره خبره ده چې داپه دي شان سره نه ده لهذاداکس په پټه طريقه سره دمال غلاکونکوپه شان شوپه دي وجه په دي کې خمس نشته .(كذافی الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار :۲/۵۲)

(۶۹)قوله وفيروزج ای لايخمس فيروزج ،يعنی په فيروزه کې (يوقسم قيمتی ډبره ده )هم خمس نشته ﴿لقوله ﷺ لاخمس فی حجر ﴾(يعنی په ډبره کې خمس نشته )،همداشان په ملغلره (دپسرلی دموسم يوه څاڅکی چې په صدف کې لويږي هغه ملغلره جوړيږي )اوپه عنبر(دسمندرله ځګ څخه پيداكيږي دبعض حضراتورأيه داده چې عنبريوقسم وابنه دي چې په سمندرکې راشنه کيږي )کې هم دطرفينوپه نزدخمس نشته ولی چې خمس په هغه مال کې وي کوم چې وړاندي دکفاروپه قبضه کې وي بيامسلمان پرهغه په غلبه سره قبضه وکړي حال داچې دسمندرپه عمق باندي دهيچاقبضه نه وي لهذاپه دي کې خمس نشته.

ف:دامام ابويوسف رحمه الله په نزدپه ملغلرواوعنبروکې هم خمس واجب دی همداشان په هغوټولوزيوراتو کې هم خمس واجب دی کوم چې له سمندرڅخه حاصليږي ولی چې داپه سمندرکې موندل کيږي اوپرسمندرهم دبادشاهانوقبضه وي لکه چې دځمکې په دننه کې پرکانونوباندي ،دطرفينوقول راجح دی : كمافی الهندية:ولاشئ فيمايستخرج من البحر كالعنبر واللؤلؤ والسمك كذافی فتاوی قاضی خان والخلاصة(هندية:۱/۱۸۵)

## باب العشر

داباب دعشرپه بيان کې دی

دځمکې په حاصلاتوکې کله عشر،کله نصف عشراوکله دعشردوچنده واجب وي ټولوته تغليبادعشر نوم وركړل شوی دی ،ددي باب له باب الركازسره مناسبت دادی چې رکازمحض قربت دی حال داچې عشركله له

تغلبي څخه هم اخیستل کیږي کوم کې چې د قربت معنی نشته په دي وجه رکازله دي څخه مخته ذکر کړای شو.

(۷۰)یجب في عسل أرض العشر (۷۱)ومسقي سماء وسیح بلا شرط نصاب وبقاء (۷۲)إلا الحطب والقصب والحشیش (۷۳)ونصفه في مسقي غرب ودالیة

**ترجمه**:واجب دی عشر د عشري ځمکي په عسلو کې، او په باراني او دویالي په اوبو سره اوبه شوي ځمکې کې بلا شرط نصاب او بلا شرط بقاء، مګرنه په لرګیو، نلانو او وابنو کې، او نصف عشر دی په بوشکه او اوهټ (څرخ) سره په اوبه شوي ځمکې کې.

**تشریح**:(۷۰)د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد کې په عسلو کې عشر واجب دی که لږ وي او که ډیر وي په دي شرط چې له عشري ځمکي څخه حاصل شوي وي د وجوب عشر دلیل د نبی کریم ﷺ دا قول ﴿ان في العسل العشر﴾ (یعني په شاتو کې عشر سته) دی، بیا حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله په وجوب عشر کې د نصاب اعتبار نه کوي په لږ او ډیرو دواړو کې عشر واجب دی لما روینا، او امام ابو یوسف رحمه الله په نزد که د عسلو مقدار لس مشکیزو (یوه مشکیزه پنځوس منه وي او من دوه رطله وي) ته ورسیدی نو په هغو کې عشر واجب دی ولې چې له عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه مروی ده چې له بنو شبابه سره د عسلو مچیانې وي هغو خلګو به له هر لسو مشکیزو څخه یوه مشکیزه نبی کریم ﷺ ته ورکوله، د امام محمد رحمه الله په نزد د عسلو نصاب پنځه فرقه (فرق بفتحتین د شپاړسو رطلو برابر یو لوښی دی او یو رطل څلور دیرش تولي او یوه نیمه ماشه وي) دی نو که عسل د پنځو فرقو په اندازه وو نو عشر واجب دی که نه نو نشته ولې چې په کومو پیمانو سره عسل اندازه کیږي په هغو کې تر ټولو لوړه پیمانه فرق دی، او د امام محمد رحمه الله اصول تیر شول چې شی چې کله پخپله اعلی پیمانه سره پنځه چنده ته ورسیږي نو په دي کې عشر واجب دی.

**ف**:د امام ابو حنیفه رحمه الله قول راجح دی کما في الدر المختار:(یجب)العشر (في عسل) وان قل (ارض غیر الخراج) ولو غیر عشریة کجبل ومفازة بخلاف الخراجیة لئلا یجتمع العشر والخراج (الدر المختار علی هامش الشامیة:۲/۵۳)

**ف**:کوم سبزیات چې په کورنو کې د خپل استعمال لپاره کرل شوي وي په هغه کی هم عشر واجب دی. (حقانیة ۲/۵۸۸)

(۷۱)قوله ومسقي سماء ای یجب العشر في کل شئ سقي بمطر، د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د ځمکې په حاصلاتو کې عشر واجب دی نصاب او بقاء هم شرط نه ده خواه که حاصلات لږ وي او که ډیر وي، تر یو کاله پوري پاته کیدای شي او که نه، او خواکه ځمکه د نهر وغیره په جاري اوبو سره اوبه شوي وي او که د باران په اوبو سره په هر صورت کې عشر واجب دی ﴿لقوله ﷺ ما اخرجت الارض ففیه العشر﴾ (یعني کوم شیان چې ځمکه راوباسي په هغو کې عشر شته) ولې چې حدیث شریف مطلق دی د باقي پاتې کیدو یا نه پاتې کیدو هیڅ شرط نشته، همدا راز د حاصلاتو د کمښت اوزیاتوب هم هیڅ قید نشته، د صاحبینو رحمهما الله تعالی په نزد تر پنځو وسقو (یو وسق د نبی کریم ﷺ په صاع سره شپیته صاع دی نو پنځه وسقه له دري سوه صاع سره برابر دي او یوه صاع څلور منه وي او یو من دوه رطله وي او یو رطل څلور دیرش تولي او یوه نیمه ماشه وي) څخه په لږ حاصلاتو کې عشر نشته ﴿لقوله ﷺ لیس فیما دون خمسة اوسق صدقة﴾ (یعني له پنځو وسقو څخه لږ کې

زکوة نشته)، دصاحبينو دحديث ځواب دادی چې له دي څخه مراددادی چې دتجارت په مال کې دوجوب زکوة لپاره دپنځووسقو وجودضروري دی په دي وجه چې په هغه زمانه کې خلکو دوسق په حساب سره خريداوفروخت کاوواوديوه وسق خرمااو قيمت به څلويښت درهمه وو نودپنځووسقو قيمت دوه سوه درهمه وو کوم چې دزکوة نصاب دی.

ف:دصاحبينوپه نزدداهم شرط دی چې حاصلات به بقاء لري يعنی له علاج څخه بغير(له علاج څخه مراد مثلا دمختلف قسمونو کيمکل وغيره لګول ياپه کولډاستوريج(يخوځايونو) کې ايښودل دي)به ترېوه کاله پوري باقی پاتې کيدای شي لکه غنم، اوريشې وغيره لهذا په سبزياتو وغيره کې عشرواجب نه دی ولی چې دوئ لره بقاء نشته دليل دنبی کريم ﷺ داارشاد﴿ليس في الخضراوات صدقة﴾ (يعنی په سبزياتو کې زکوة نشته )دی اوپه سبزياتو کې دعشرد نه واجبيدلو علت ددوئ نه بقاء ده لهذا هرهغه حاصل چې له بغيرله علاج څخه باقی نشي پاتي کيدلای په هغو کې به عشرواجب نه وي، دصاحبينو دپيش کرده حديث ځواب ورکړل شوی دی چې له دي څخه مراددادی چې صاحب خضروات ،چې خضراوات له خپله ځانه سره ويسي اوپه عاشرتيرشي اوعاشرته دعشرقيمة ورکولوپه ځای عين خضراوات ورکوي نوعاشربه عين خضراوات نه اخلې ولی چې له عاشرسره دعين خضراواتو دخرابيدلو خطره ده.

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی کمافی الدرالمختار:(و)تجب فی (مسقی السماء)ای مطر(وسيح) کنهر (بلاشرط نصاب) راجع للکل (و)بلاشرط (بقاء) وحولان حول ،قال ابن عابدين (قوله بلاشرط نصاب )وبقاء فيجب فيمادون النصاب بشرط ان يبلغ صاعاوقيل نصفه وفی الخضراوات التی لاتبقی وهذاقول الامام وهو الصحيح (الدرمع الشامية:٢/٥٣)

(٧٢)البته په نلانو ،دسونګ په لرګيانواووښوکې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدهم عشرواجب نه دی ولی چې داشيان دځمکې مقصودي حاصلات نه دي عموماخلګ داشيان له باغونوڅخه کاږي.

ف:هوکه دځمکې حاصلات همدغه شيان وو نوبيايه دي شيانوکې هم عشرواجب دی ،همداشان هرهغه شی کوم چې دځمکې مقصودي حاصل نه وي په هغه کې عشرنشته اوکوم شي چې دځمکې مقصودي حاصل وي نوپه هغه کې عشرشته که څه هم وابنه وي کمافی مجمع الانهر(ولاشئ فی حطب وقصب فارسی وحشيش ) لانه لايقصدبهمااستغلال الارض غالباًفلواتخذهامشجرة اومقصبة اومنبتاللحشيش ففيه العشر(مجمع الانهر:١/٣١٩)

ف:غرب بالفتح غټې بوشکه،داليه رهټ (څرخ)په کوم چې ډيري بوشکې تړل کيږي بياهغه په غوايې وغيره سره څرخول کيږي.

ف:افيون دمتعددومضروشيانوماده ده په دي وجه دهغوله کښت اوتجارت څخه احترازضروري دی ،بياهم که دتداوی لپاره وی نودهغوئ کښت اوکاروبارجائزدی په دي وجه دهغوئ په حاصلاتوکې هم عشرلازم دی .(حقانية:٣/٥٨٤)

(٧٣)قوله ونصفه فی مسقی غرب اوداليةای يجب نصف العشرفی مسقی غرب اودالية ،يعنی که يې ځمکه په لويه بوشکه يادڅرخ په ذريعه سره اوبه کوله نوباتفاق الائمة الثلاثة په دي کې نصف عشر(شلمه حصه ) واجب ده ولی چې په دي صورتونوکې مشقت زيات دی په دي وجه په دي کې نصف عشرواجب دی ،اوکه يې دلښتی

یابارانِ په اوبو سره اوبه کوله نو ځرنګه چې په دي کې مشقت کم دی په دي وجه په دي کې عشر (لسمه حصه )واجب دی.

(۷۴)وَلَاتَرفَع المؤن (۷۵) وَضِعْفُهُ فِي أَرْضٍ عُشْرِيَّةٍ لِتَغْلِبِيٍّ (۷۶) وَإِنْ أَسْلَمَ أَوِ ابْتَاعَهَا مِنْهُ مُسْلِمٌ أَوْ ذِمِّيٌّ (۷۷) وَخَرَاجٌ إِنْ اشْتَرَى ذِمِّيٌّ أَرْضًا عُشْرِيَّةً مِنْ مُسْلِمٍ (۷۸) وَعُشْرٌ إِنْ أَخَذَهَا مِنْهُ مُسْلِمٌ بِشُفْعَةٍ أَوْ رُدَّ عَلَى الْبَائِعِ لِلْفَسَادِ

**ترجمه**:اونه دي رفع کيږي خرڅه،او دوچنده دي واخيستل شي دتغلبی له عشري ځمکې څخه ،که څه هم هغه اسلام قبول کړي یا واخلی هغه له ده څخه کوم مسلمان یاذمی ،اوخراج واجبيږي که واخيستله کوم ذمی له مسلمان څخه عشري ځمکه،اوعشرواجبيږي که ویوړه له ده څخه کوم مسلمان په حق شفعه سره یا واپس کړل شوه پربائع باندي دفسادبيع په وجه،

**تشريح**:(۷۴)دټولو حاصلاتوعشراداء کول ضروري دی دمزدورانواوغوایانووغیره خرڅه به نه ځینې باسي ولی چې نبی کریم ﷺ دلږواوزیاتوخرڅوپه مطابق دواجب مقدارهم مختلف بیان کړی دی نو که خرڅې ځینې وایستل شي نوبیابه تفاوت پاتې نه شي لهذادخرڅوله وضع کولوڅه بغیردټولو حاصلاتوعشرواجب دی.

## کوم قسم مصرف به منهاکيږي

**ف**:فروټ (لنده میوه)ترمارکيټ پوري درسولو خرڅه به ایستل کيږي که یا؟په دي باره کې دبرادرمحترم مولانادوست محمدصاحب یوه فتوی نقل کوم ،مولاناصاحب لیکي :له باغ اوکښت څخه په حاصلاتوچې څومره مصرف کيږي یعنی دځمکې له کرنې ته دبرابرولو څخه نیولې بیاترحاصلاتو حاصلولوپوري چې کوم اخراجات(مصرف) کيږي مثلا،یوي کول،دځمکې پوچې کول،ځمکه برابرول، تخم پاشل ،اوبه کول ،امبارورکول ،دمیوي دساتنې لپاره اسپري وغیره کول ،اومزدورانوته دپړي کولو وغیره اجرت ورکول وغیره ته دفقه په اصطلاح کې مؤنة الزرع ویل کيږي بلاشبه داخرڅه له عشراداء کولوڅخه مخکې له حاصلاتوڅخه نه ایستل کيږي بلکه دټولو حاصلاتوڅخه به عشرایستل کيږي ،له دي څخه علاوه که مالک دافروټ وغیره له دي ځای څخه لیږي کوم مارکيټ ته وړي (اوتراوسه یې عشرنه وي اداء کړی )ترڅوچې په زیات قیمت سره یې خرڅ کړي په کوم کې چې دفقراء و هم فایده ده ،نو دلاري کرایه اودپیکنګ (په کریټوغیره کې بندولو )وغیره دخرڅې د منهاکولوپه باره کې کومه صریحه جزئیه خوپه لاس رانغله مګرپه نظائروکې له غوراوفکرکولوڅخه معلوميږي چې .دفصل له حاصلیدلوڅخه وروسته په مارکيټ کې ترخرڅولوپوري خرڅه به منهاکيږي له دي څخه بعدبه دباقی مانده روپوڅخه عشراداء کيږي لمافی التاترخانية :لوله اذاکانت الارض عشرية فاخرجت طعاماوفی حمله الی الموضع الذی يعشرفيه مؤنة فانه يحمله اليه وتکون المؤنة منه (التاترخانية ۲/۲۵۵:

**ف**:میوه اوکښت که له پخیدو اوتیاریدوڅخه وروسته خرڅ کړای شي نوعشردبائع پرذمه واجب دی اوکه خام فصل خرڅ کړای شي نوکه مشتري فی الحال قطع (یعنی پرې)کړل نوبیاهم عشردبائع پرذمه دی اوکه یې ترپخیدوپوري پرېښودل نودمشتري پرذمه دی کمافی الهندية :واذاباع الارض العشرية وفيهازرع قدادرک مع

زرعها او باع الزروع خاصة فعشره على البائع دون المشترى ولو باعها والزرع بقل ان قطعه المشترى فى الحال يجب على البائع ولو تركه حتى ادرك فعشره على المشترى (هندية: ۱/۱۸۷)

(۷۵) قوله وضعفه فى ارض عشرية لتغلبى اى يجب ضعف العشر فى ارض عشرية لتغلبى، يعني دبني تغلب دنصارى له عشري ځمکې له مالونو څخه به ټيکس (ماليه) دهغه زكوة دوچنده اخلې كوم چې له مسلمانانو څخه اخيستلې کيږي ولې چې دصحابه کرامو ﷺ پردې اجماع ده.

(۷۶) تغلبى كه مسلمان شويا دتغلبى ځمکه كوم مسلمان يا ذمى واخيستله نوهم دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد له دې ځمکې څخه به دوچنده اخيستل کيږي ولې چې دادې ځمکې وظيفه ده لهذا دا ځمکه بمع وظيفه دمسلمان يا ذمى طرف ته منتقل کيږي، امام ابويوسف رحمه الله په نزد که دتغلبى ځمکې كوم مسلمان واخيستل يا تغلبى مسلمان شونو بيا دا ځمکه عشري کرځې.

ف: دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دى كما فى الدرالمختار: ويجب ضعفه فى ارض عشرية لتغلبى مطلقا وان كان طفلا او انثى او اسلم او ابتاعها من مسلم او ابتاعها منه مسلم او ذمى لان التضعيف كالخراج فلا يتبدل. (الدرالمختار على هامش الشامية: ۲/۵۶)

ف: بنى تغلب په بلادروم کې دنصارى عرب له نسل څخه يوه قبيله ده كومه چې دجاهليت په زمانه کې عيسائي شوي وه بيا حضرت عمر رضی الله عنه دخپل خلافت په زمانه کې له دې خلګو څخه جزيه طلب کړه نودې خلګو انکار وکړ او ويې ويل چې موږ عرب يو له موږ سره دې هم دنورو عربو په څير معامله وشي مګر حضرت عمر رضی الله عنه وفرمايل چې له مشرک څخه صدقه نه اخلم ددې په اوريدلو سره بعضې وتښتيدل اوله نصارى روم سره يوځاى شول نونعمان بن زرعه عرض وکړ يا امير المؤمنين دوئ په جزيه ورکولو سره شرميږي لهذا ته دصدقې په نامه له دوئ څخه جزيه وصول کړه او دښمنانو ته ددوئ مدد کول مه پريږده نوحضرت عمر رضی الله عنه دوئ راوغوښتل څومره مقدار چې له مسلمانانو څخه زكوة اخيستل کيده دهغه دوچنده يې ددوئ په ښځو او نارينه ومقرره کړه او پردې صحابه کرامو ﷺ اتفاق وکړ.

ف: دپاکستان اکثره ځمکې عشري دي دکومو ځمکو چې په يو خاص دليل سره خراجى والى ثابت نه وي نوهغه به عشري ګڼل کيږي، حکومت چې كوم ټيکس وصول کوي په هغه سره عشرنه اداء کيږي عشر جلا نورورکول ضروري دى. (فتاوى عثمانى: ۲/۱۲۷)

(۷۷) قوله وخراج ان اشترى ذمى ارضا الخ، يعني که دمسلمان عشري ځمکه كوم ذمى واخيستله نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد به له ده څخه خراج اخيستل کيږي ولې چې په عشر کې دعبادت معنى شته او ذمى دعبادت اهل نه دى لهذا خراج دکافر له حال سره ښه مناسب دى، امام ابويوسف رحمه الله فرمايي: چې له ده څخه به دوچنده عشر اخيستل کيږي او دامام محمد رحمه الله په نزد حسب سابق اوس هم دا ځمکه عشرى ده او له ده څخه به عشر اخيستل کيږي.

ف: دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دى كما فى الدرالمختار: (واخذ الخراج من ذمى) غير تغلبى (اشترى) ارضا (عشرية من مسلم) وقبضها منه للتنافى، قال ابن عابدين: (قوله للتنافى) علة لقوله واخذ الخراج يعنى انما وجب الخراج لا العشر لان فى العشر معنى العبادة والكفر ينافيها (الدرمع الشامية: ۲/۵۶)

(٧٨)قوله وعشران اخذهامنه مسلم بشفعة اي يجب عشران اخذالارض الخراجية من الذمي المسلم بشفعة ، يعنى كه مسلمان عشري ځمكه له ذمي څخه بحق شفعة واخيستله نوله دي مسلمان څخه به عشر اخيستل كيږي ولى چې دحق شفعه له وجه گويادا ځمكه دي شفيع له ذمي څخه بلكل اخيستى نه ده بلكه له مسلمان څخه يې اخيستي ده اومسلمان چې كله له بل مسلمان څخه عشري ځمكه واخلى نوپه هغې كې عشر وي.همداشان كه ذمي له كوم مسلمان څخه عشري ځمكه واخيستله مگر دفساديبع په وجه سره يې داځمكه بيرته مسلمان بائع ته واپس كړه نوبيابه هم په دي كې عشروي ولى چې داخوداسې شوه گويابلكل بيع شوي نه ده وځكه چې دفساديبع له كبله واجب الردوه لهذاله دي څخه دمسلمان بائع حق نه ده منقطع شوى .

(٧٩)وَاِنْ جَعَلَ مُسْلِمٌ دَارَهُ بُسْتَانًا فَمُؤْنَتُهُ تَدُوْرُ مَعَ مَائِهِ بِخِلَافِ الذِّمِّيِّ (٨٠)وَدَارُهُ حُرٌّ كَعَيْنِ قِيْرٍ وَنِفْطٍ فِيْ أَرْضِ عُشْرٍ (٨١)وَلَوْ فِيْ أَرْضِ خَرَاجٍ يَجِبُ الْخَرَاجُ

**ترجمه** :اوكه مسلمان له خپل كور څخه باغ جوړكړنودده دواجب مقدارمدارپه اوبه ده په خلاف دذمي ، اوذمي كورازاددى لكه چې دقاراونفط چشمه په عشري ځمكه كې ،اوكه خراجي ځمكه وي نوخراج واجب دى.

**تشريح**:(٧٩)كه كوم مسلمان له خپل كورڅخه باغ جوړكړنودي عشرداوبوپه لحاظ سره بدليږي يعنى كه دي باغ ته عشري اوبه راتلې نوله حاصلاتوبه يې عشر اخيستل كيږي اوكه باغ په خراجي اوبواوبه كيده نوپه حاصلاتوكې يې خراج دى ولى چې په ځمكه كې نماء داوبه له كبله ده نوځمكه داوبه تابع ده لهذادابه په مسلمان باندى ابتداء خراج نه گڼل كيږي بلكه داداوبوقديمه وظيفه ده ،په خلاف دذمي يعنى كه ذمي له خپل كورڅخه باغ جوړكړنوپه حاصلاتوكې به يې خراج واجب وي ولى چې له ذمي څخه عشراخيستل متعذردي په دي وجه چې په عشركې دعبادت اوقربت معنى شته اوقربت له كافرڅخه متصورنه دى.

ف:داسمان اوبه عشري دي همداشان دچشمو،څاهانواوداسې دريابونواوبه كوم چې دچاپه تصرف كې نه وي عشري دي اوكوم نهرونه چې غيرمسلم عجميانوكيندلي وي دهغواوبه خراجي دي همداشان دخراجي ځمكې دچينواوڅاهانواوبه هم خراجي دي .(كذافى الهداية :١٨٦/١،ومجمع الانهر:٢٢٣/١)

(٨٠)اوذمي كورازاددى په هغه كې هيڅ واجب نه دي ولى چې حضرت عمر ﷺ داوسيدلو كورنه له ټيكس څخه بري گرځولي وو پرهمدي دصحابه كرامو ﷺ اجماع ده ،همدارازپه كورنوكې نماء نشته ،لكه څرنگه چې دقير(رال ،بدبويه تيل ،توررنگي يوقسم شيان كوم چې په كشتيو پسې مشل كيږي ترڅوابه وردننه نه شي )اونفط(يوقسم تيل كوم چې په اوبه خپاره يې )په چينه كې چې په عشري ځمكه كې وي چې په دوئ كې هيڅ شى هم واجب نه دى ولى چې دادځمكې حاصلات نه دي بلكه داوبودچينوپه شان چينې دي لهذاپه دوئ كه څه واجب نه دي .

(٨١)اوكه قيرپه خراجي ځمكه كې وو نوپه دوئ كې به خراج واجب وي مگرله دي څخه مراد دادى چې دچينې په گيرچاپيره كې ځمكه كې خراج دى نه بنفسه په چينه كې ،وجه يې داده چې په داسې ځمكه كې خراج واجب وي كومه چې دزراعت قابله وي اوذمي هغه اباده نه كړي .

**ف**: که ځمکه دزراعت قابله وه مګر مالک په هغې کې هیڅ شی ونه کرل نو که خراجی ځمکه وي نو په دې کې خراج واجب دی او که عشري ځمکه وي نو هیڅ هم واجب نه دي ، او که دځمکې حاصلات هلاک شول نو که ځمکه عشري وه او که خراجي دواړه ساقطیږي کمالی شرح التنویر: تمکن ولم یزرع وجب الخراج دون العشر ویسقطان بهلاک الخارج (ردالمختار: ۲/۵۹)

## بَابُ الْمَصْرِفِ

دا باب دزکوة دمصرف په بیان کې دی

کله چې مصنف رحمه الله له زکوة او دزکوة له متعلقاتو څخه فارغ شونو اوس ضروري شوه چې دا بیان کړي چې ددې شیانو مصرف څوک دي په دي وجه مصنف رحمه الله دمصرف زکوة وغیره بیان شروع کړ.

(۸۲)هو الفقیر والمسکین وهو أسوأ حالا من الفقیر (۸۳) وَالعَامِلُ (۸۴) وَالمُکَاتَب (۸۵) وَالمَدیُون (۸۶) وَمُنقَطِعُ الغُزَاة (۸۷) (وابن السبیل (۸۸) فَیَدفَعُ إلی کُلِّهِم او إلی صِنفٍ

**ترجمه**: دزکوة مصرف مسکین او فقیر دی او مسکین بد حاله دی تر فقیر ، او عامل دی ، او مکاتب دی ، او مقروض دی ، او کوم چې له غازیانو څخه منقطع شوی وي ، او مسافر دی ، نو ورديکړي دي ټولو ته یا یو صنف ته.

**تشریح**: د زکوة دمصارفو په باره کې اصل دالله تعالی دا ارشاد دی ﴿ إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلفُقَرَاءِ وَالمَسَاكِينِ الخ ﴾ په دې ایت مبارک کې الله تعالی اته قسمه ذکر فرمایلې دي (۱) له دې اتو قسمونو څخه یو قسم مؤلفة القلوب دې مؤلفة القلوب دري قسمه خلک دي /نمبر۱. هغه کفار کوم ته چې نبی کریم ﷺ په دې وجه زکوة ورکاوو ترڅو چې دوئ اسلام قبول کړي او ددوئ په اسلام قبولو سره ددوئ قوم ونه اسلام قبول کړي ./نمبر۲. هغه خلک کوم چې اسلام قبول کړی وو مګر ددوئ اعتقاد کمزوری وو نو دوئ دثابت قدم پاتې کیدلو لپاره نبی کریم ﷺ دوئ ته زکوة ورکاوو./نمبر۳. هغه کفار کوم ته چې نبی کریم ﷺ په دې وجه زکوة ورکاوو ترڅو ددوئ له شر څخه مسلمانان محفوظ شي ، مګر په ایت مبارکه کې له ذکرشویو اتو قسمونو څخه اوس دا قسم (یعنی مؤلفة القلوب )ساقط دي ولی چې الله تعالی اوس اسلام ته په غلبه ورکولو سره له دې څخه پرواه کړی دی.

**ف**: دمحققین محدثینو او فقهاوله تصریحاتو څخه دا ثابته شوي ده چې دمؤلفة قلوب حصه کوم کافر ته په هیڅ وخت کې نه ده ورکړل شوي نه درسول الله ﷺ په عهد مبارک کې او نه دخلفاء راشدینو په زمانه کې ، او کومو غیر مسلمانانو ته چې ورکول ثابت دي هغه له مدزکوات (یعنی دزکوات له فنډ ) او صدقاتو څخه نه وو بلکه له خمس غنیمت څخه ورکړل شوي دي له کوم څخه چې هرحاجت مند مسلم او غیر مسلم ته ورکول کیدای شي نو مؤلفة قلوب صرف مسلمان پاته شول او په دوئ کې چې کوم فقیران دي دهغوئ دحصې پریقابانديِ اوس هم دټول امت اتفاق دی اختلاف صرف په دې صورت کې دی چې دا خلک غنی او صاحب

نصاب وي نو دامام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نزد ځرنګه چې په ټولو مصارف زکوٰة کې فقر او حاجت شرط نه دی په دي وجه په مؤلفة قلوب کې داسې خلک هم داخلوي کوم چې غنی او صاحب نصاب وي ،دامام اعظم ابو حنیفه رحمه الله او دامام مالک رحمه الله په نزد له عاملین صدقه ځخه علاوه په ټولو مصارفو کې فقر او حاجت شرط دی د دي تحقیق خلاصه دا راووتله چې د مؤلفة قلوب حصه دائمه اربعه په نزد منسوخه نه ده ځکه چې مؤلفة قلوب صرف مسلمان پاته شول د هغوئ حصه قائمه او باقي ده .(معارف القرآن:۴/۴۰۴)

(۸۲).(۲)د زکوٰة له مصارفو ځخه فقراء او مساکین دي ،فقراء هغه دي له کوموسره چې لږ مال وي مګر بقدر نصاب نه وي. (۳)مساکین هغه دي له کوموسره چې هیڅ نه وي ،مساکین له فقراء ځخه په بد حال دي ،وقد قيل على العكس.

(۸۳).(۴)د زکوٰة له مصارفو ځخه څلورم قسم عاملین دي عاملین هغه دي کوم چې دامام له طرف ځخه د مالوله مالکانو ځخه د صدقاتو په وصولو مأموروي ،امام عامل او د هغه سره یو ځای کارکونکو ته د دوئ دعمل په اندازه ورکول کیږي حتی که خلګو په خپله زکوٰة امام ته راوړي یا مال زکوٰة دعامل له لاس ځخه هلاک شونو عامل مستحق نه دی ولی چې عامل ته د ده دعمل په وجه سره ورکول کیږي او عمل نه شو موجود ځکه نو هغه مستحق هم نه دی.

(۸۴).(۵)د زکوٰة له مصارفو ځخه پنځم قسم وفي الرقاب دي یعنی په مال زکوٰة سره دي دمکاتب غلام دبدل کتابت په اداء کولو کې مرسته وکړای شي.

(۸۵).(۶)د زکوٰة له مصارفو ځخه شپږم قسم غارمین دي غارم هغه شخص دی دکوم پرذمه چې دخلګو پورونه باندي وي او هغه له قرض ځخه دزائد مقدار نصاب مالک نه وي.

(۸۶).(۷)د زکوٰة له مصارفو ځخه اوم قسم وفي سبيل الله دي ،دامام ابو یوسف رحمه الله په نزد له وفي سبيل الله ځخه مراد داسې غازی دی دکوم په کور کې چې مال وي مګر اوس وخت په سفر جهاد کې له ده سره مال نه وي ،دامام محمد رحمه الله په نزد هغه حاجی مراد دی دکوم سره چې په سفر حج کې مال نه وي ، دبعضو په نزد طلباء علم مراد دي په بدائع کې راغلی دي چې تمام طرق قرب مراد دي.

ف: دامام ابو یوسف رحمه الله قول صحیح او راجح دی کما في الدر المختار: وفي سبيل الله وهو منقطع الغزاة وقيل الحاج والاول قول ابي يوسف اختاره المصنف تبعا للكنز قال في النهر وفي غاية البيان انه الاظهر وفي الاسبيجابي انه الصحيح (الدر المختار على هامش الهداية ۲/۶۷:)

(۸۷).(۸)له مصارف زکوٰة ځخه اتم قسم ابن سبيل دی ،له ابن سبيل ځخه مراد هغه مسافر دی دکوم مال چې د ده په وطن کې وي مګر اوس وخت له ده سره په حالت سفر کې هیڅ هم نه وي ده لره دومره زکوٰة اخیستل جائز دی کوم چې ده لره د ده تر کوره په رسیدلو کې کفایت کوي له دي ځخه زیات جائز نه دی.

(۸۸)یعنی مذکوره اوه قسمه خلک زموږ په نزد د زکوٰة مصارف دي مګر د زکوٰة داسې مستحق نه دي چې دوئ ټولو ته زکوٰة ورکول واجب دی لهذا که صاحب مال زکوٰة دي او واقسامو ته ورکړنو هم جائز دی او که یې ټول زکوٰة صرف یو ه صنف ته ورکړنو بیا هم جائز دي ولی چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه دمذکوره

بالاایت مبارک په تشریح کې فرمایلې دي چې فی ای صنف وضعته اجزاک(یعنی په اوو اقسامو کې چې کوم صنف ته هم زکوة ورکړې جائزدی )لهذااوو اقسامو ته ورکول ضروري نه دی.

**ف**:دامام شافعی رحمه الله یوقول دادی چې اوه سره اقسام دزکوة مستحق دي لهذادهرقسم دري دري افرادویعنی لږترلږه یوویښت افرادوته زکوة ورکول ضروري دی ،دامام شافعی رحمه الله دلیل دادی چې په ایت مبارک کې صدقات دمصارف طرف ته دلام په واسطه سره مضاف کړل شوی دی اولام داستحقاق لپاره راځي لهذااوه سره اقسام دزکوة مستحق دي ،امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوي دی چې دالام داختصاص لپاره دی داستحقاق لپاره نه دی یعنی دصدقاتومصرف صرف اوه قسمه دي له دي ماسوادصدقاتو مصرف نشته دامطلب نه دی چې اوه سره اقسام دصدقاتو مستحق دي.

(۸۹)لاالی ذمي وصح غیرها(۹۰)وبناء مسجد(۹۱)وتکفین میت(۹۲)وقضاء دینه(۹۳)وشراء قن یعتق(۹۴)واصله وان علا وفرعه وان سفل(۹۵)وزوجته وزوجها وعبده(۹۶)ومکاتبه ومدبره وام ولده(۹۷)ومعتق البعض

**ترجمه**:زکوة به ذمی ته نه ورکوي اوصحیح ده له زکوة ماسوادنوروصدقاتوورکول ،اوکوة دي نه ورکوي دمسجدپه بناء کې ،اودمرده په تکفین کې ،اودهغه دقرض په اداء کولو کې ،اودغلام په اخیستلو کې دازادولولپاره ،اوخپل اصل ته اگرلوړوي اوخپل فرع ته که څه هم کښته وي ،اوخپلې ښځې ته اوخپل خاوندته اوخپل غلام ته ،اوخپل مکاتب ،مدبراوام ولدته ،اوهغه ته دکوم چې بعض حصه ازاده شوي وي.

**تشریح**:(۸۹)قوله لاالی ذمی ای لایدفع الزکوة الی ذمی ،یعنی ذمی (ذمی هغه کافرته ویل کیږي کوم چې دبادشاه په اجازه سره په داراسلام کې اوسیږي )ته زکوة ورکول جائزنه دي ولی چې نبی کریم ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه ته فرمایلي وو چې خذهامن اغنیائهم (ای المسلمین )وردهاالی فقرائهم (ای المسلمین )(یعنی زکوة دمسلمانانوله مالدارانو څخه واخله اودهغوئ په فقیرانوئې مصرف کړه )لهذاغیرمسلم ته زکوة ورکول جائزنه دي ، هوله زکوة څخه علاوه نورصدقات ذمیانوته ورکول جائزدي لقوله ﷺ ﴿تصدقواعلی اهل الادیان کلها﴾ (دټولو ادیانوپه خلکوصدقه کوئ )ددي روایت تقاضا خوداده چې زکوة ورکول هم جائزشي مگر دحضرت معاذ رضی الله عنه دحدیث په وجه سره موږزکوة ورکول جائزنه گڼو.

**ف**:دامام زفر رحمه الله په نزدذمی ته هم زکوة ورکول جائزدی ځکه چې دالله تعالی ارشاد ﴿انماالصدقات للفقراء والمساکین الخ﴾ مطلق دی مسلمان اوذمی دواړوته شامل دی ،زموږدلیل دحضرت معاذبن جبل رضی الله عنه حدیث دی چې دزکوة مصرف صرف مسلمان دی غیرمسلم ته زکوة ورکول جائزنه دی ،مگرسوال دادی چې دحضرت معاذ رضی الله عنه حدیث خبرواحددی اوپه خبرواحدسره په کتاب الله باندی زیادت جائزنه دی؟ځواب :ایت مبارک مخصوص منه البعض دی ځکه چې له دي څخه دزکوة ورکونکی اصول اوفروع بالاجماع خارج دي اودمخصوص منه البعض تخصیص په خبرواحدسره جائزدی.

(۹۰)قوله وبناء مسجدای لاتصرف الزکوة الی بناء مسجد،یعنی دزکوة په مال سره مسجدجوړول جائزنه دي ولی چې په زکوة کې تملیک (یعنی فقیرمالک جوړول )رکن دی حال داچې دمسجدپه تعمیرکولو کې دتملیک معنی نشته.

(۹۱)قوله وتكفين ميت اى لاتصرف الزكوة الى تكفين الميت ،يعني دزكوة په مال سره کوم مرده لره كفن وركول هم جائزنه دي ولی چې په مرده کې هم دمالک جوړيدلو صلاحيت نشته په دي وجه دزكوة په روپوسره ده ته كفن وركول هم جائزنه دي .

ف:که دزکوة روپی مستحقو طالبانوته په دي ډول سره ورکول کیږي چې هغوئ خپل ځانونه ددي روپومکمل مالک اومختارګڼي اوبیاپه خوښه رضاسره بغیرله څه جبرڼ هغه روپی یادهغوروپوڅه حصه مدرسې ته دچندي په ډول سره ورکوي نوداروپی دتعمیرپه کارکې خرڅول جائزدي لیکن که محض جوړه شوي حیله کیږي چې طالبان ځان دروپو مالک نه ګڼي اوداخیال یې وي چې داروپی په هرحال کې مدرسې ته ورکول دي یایې په جبرسره ورکوي نوداشان کول هیڅ کله جائزنه دي اومهتمم ته تملیک کول نه دي په کارالاداچې څوک زکوة ورکونکی مهتمم مستحق زکوة وګڼي اوکوة ورکړي نودهغه که خوښه شوه نوداروپی مدرسې ته ورکولی شي .(فتاوی عثمانی :۲/۱۶۰)

ف:هغه دیني مدرسې کومې چې دغریبوطالبانودخوراک وغیره بندوبست کوي هغوئ ته له دي تصریح کولوسره زکوة ورکول جائزدي چې داروپی غریبوطالبانوته نقد یادخوراک اویاجاموپه صورت کې ورکړئ ،دمدرسینو اوملازمینوپه تنخواګانواودمکان په تعمیروغیره کې یې مه مصرفوئ دکومې مدرسې په باره کې چې دااطمینان وي نوهغې ته له زکوة ورکولوڅخه وروسته ته عندالله بری یې لیکن دکومې مدرسې په باره کې چې دامعلوم وي چې دامُدّات زکوة په خپل صحیح مصرف کې نه مصرفوي هغې ته په روپوورکولوسره ته نه بری کیږي.(فتاوی عثمانی:۲/۱۵۸)

## دمدرسي مهتمم دچاوکيل دی ؟

ف:دمدرسې مهتمم دزکوة ورکونکووکیل دی نه دطالبانو ،نوکه له مهتمم څخه زکوة ضائع شونوپرهغه به ضمان نه وي اومالک به دوهم ځل زکوة اداء کوي.(معارف القران ،۴/۳۹۹)،دهندپه علماؤکې څینوناظمان دطالبانو،څینودزکوة اداء کونکواوڅینودواړووکیل تسلیم کړي دي ،ددې عاجزخیال دادی چې همدادریمه رأیه صحیح ،قرین قیاس اومبنی براحتیاط ده .(جدید فقهی مسائل:۱/۲۲۶)

(۹۲)قوله وقضاء دينه اى لاتصرف الزكوة الى قضاء دين الميت ،يعني دزكوة په مال سره دمرده قرض اداء کول جائزنه دی یعنی زکوة نه اداء کیږي ولی چې دزکوة په اداء کولوکې تملیک شرط دی حال داچې په قرضه اداءکولوکې تملیک نشته خصوصادمرده په قرض اداء کولوکې ځکه چې په مری کې دمالک جوړیدلو صلاحیت نشته .

(۹۳)قوله وشراء قن يعتق اى لاتصرف الزكوة الى شراء قن يعتق ،يعني دزكوة په روپوسره دغلام اخيستل اوبیاازادول جائزنه دي ولی چې دغلام په ازادولوسره له غلام څخه دمالک ملکیت ساقطیږي اوسقوط ملک تملیک نه دی حال داچې تملیک دزکوة رکن دی .

(۹۴)قوله واصله وان علا ای لاتصرف الزكوة الى اصل المزكی وان علا،یعني زكوة وركونكی دخپل مال زكوة به نه خپل پلارته وركوي اونه نيكه ته اونه له هغه لوړاصولوته ،اونه به يي خپل اولادته وركوي ولی چې داملاكومنافع ددوئ ترمنځ سره متصلې اومشتركې وي لهذاكامل تمليک نه متحقق كيږي حال داچې تمليک ركن دی.

(۹۵)قوله وزوجته ای لايدفع الرجل الزكوة الى زوجته ولاالزوجة الى زوجها،یعني دخاوندا وښځې ترمنځ هم داصول اوفروعو په شان منافع مشتركې وي لهذاخاوندخپلې ښځې ته زكوة وركول جائزنه دي له همدي وجه دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نزدښځه هم خپل خاوندته زكوة نشي وركولای مګرد صاحبينورحمهماالله تعالی په نزدښځې خپل خاوندته زكوة وركول جائزدي دصاحبينو رحمهماالله تعالی دليل دادی چې دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ښځې له نبی كريم ﷺ څخه پرخپل خاوند دصدقې په باره كې پوښتنه وكړه نونبي كريم ﷺ وفرمايل:﴿لک في ذلک أجران أجر الصدقة وأجر الصلة﴾ (یعنی ستاليپاره دوه اجره دي يودصدقې اودوهم دصله رحمی)،صاحبينوته ځواب وركړل شوي دی چې داحديث شريف په نفلې صدقه محمول دی لهذافرض زكوة خاوندته وركول جائزنه دي.

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی :كمافي محيط البرهاني :ولايعطی زوجته بلاخلاف بين اصحابناوكذالاتعطي المرأة زوجهاعندابی حنيفه لماقلناوعندهماتعطيه لماروی وابوحنيفة يحمل الحديث علی الصدقة النافلة (محيط البرهاني:۳/۲۱۳)

(۹۶)قوله وعبده ومكاتبه الخ ای لايدفع المزكي الزكوة الى عبده ومكاتبه الخ،یعني زكوة وركونكی به خپل غلام،مكاتب، مدبراوخپلې ام ولد ته زكوة نه وركوی ځكه چې تمليک نه راځي په دي وجه چې دمملوک ګټه دمولی ده اومكاتب دبدل كتابت داخری درهم تراداء كولوپوري مملوک شمارل كيږي لهذاهغه په ګټه كې دمولی حق دی نودوئ ته زكوة وركول ګواكې خپل ځان ته زكوة وركول دي لهذاتمليک دنه تام والی له كبله جائزنه دی.

(۹۷)قوله ومعتق البعض ای لايدفع الی عبده الذی اعتق بعضه ،یعني دكوم غلام چې بعض حصه ازاده وي هغه ته زكوة وركول جائزنه دي مثلايوكس دغلام جزء شائع ازادكړ،يايوغلام ددووكسانوسره مشترک وو په دوئ كې يوه خپله حصه ازاده كړه دوهم شريک له ده څخه دخپلې حصې ګټل اختياركړل نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدداغلام ددي شريک اخرپه حق كې دمكاتب په منزله كې دی اوخپل مكاتب ته زكوة وركول جائزنه دي كمامر،لهذاددي شريک اخرهم دي غلام ته زكوة وركول جائزنه دي حال داچې دصاحبينوپه نزدداغلام اوس مكمل ازادشمارل كيږي هوددي شريک اخرمقروض دی اوخپل مقروض ته زكوة وركول جائزدی.

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی كمافي الشامية:(قوله واماالمشترک)قال في البحرولوكان بين اثنين اجنبين فاعتق احدهما حصته وهو معسر واختار الساكت الاستسعاء فللمعتق الدفع لانه مكاتب لشريكه وليس للساكت الدفع لانه مكاتبه (ردالمحتار:۲/۷۰)

(۹۸)وَغَنِيٍّ يَمْلِكُ نِصَابًا(۹۰)وَعَبْدِهِ وَطِفْلِهِ(۱۰۰)وبني هاشم(۱۰۱)وَمَوَالِيهِمْ(۱۰۲)وَلَوْ دَفَعَ بِتَحَرٍّ فَبَانَ أَنَّهُ غَنِيٌّ أَوْ هَاشِمِيٌّ أَوْ كَافِرٌ أَوْ أَبُوهُ أَوْ ابْنُهُ صَحَّ(۱۰۳)وَلَوْ عَبْدُهُ أَوْ مُكَاتَبُهُ لَا(۱۰۳)وَكُرِهَ الْإِغْنَاءُ وَنُدِبَ عَنِ السُّؤَالِ(۱۰۵)وَكُرِهَ نَقْلُهَا إِلَى بَلَدٍ آخَرَ لِغَيْرِ قَرِيبٍ وَأَحْوَجَ(۱۰۶)وَلَا يَسْأَلُ مَنْ لَهُ قُوتُ يَوْمِهِ

**ترجمه**: او داسې غني ته (دي زکوة نه ورکوي) کوم چې د نصاب مالک وي، او د غني غلام ته او د غني کوچنې بچی ته، او بني هاشم ته، او ددوئ ازاد کړل شویو غلامانو ته، او که یې زکوة ورکړله سوچ وروسته بیا ښکاره شو چې هغه خو غني یا هاشمي یا کافر یا د زکوة ورکونکی پلار یا زوی دی نو صحیح دی، او که هغه د زکوة ورکونکی غلام یا مکاتب وي نو صحیح نه دی، او مکروه ده د فقیر غني کول او مستحب ده له سوال څخه مستغني کول، او مکروه ده منتقل کول د زکوة بل ښار ته د غیر قریب او غیر محتاج لپاره، او سوال دي نه کوي هغه چې له ده سره خوراک وي د یوې ورځې.

**تشریح**: (۹۸) قوله وغنی یملک ای لایدفع المزکی الزکوة الی غنی یملک نصابا، یعني زکوة ورکونکی دي داسې شخص ته زکوة نه ورکوي چې هغه غني وي (یعني د کوم نصاب مالک وي) ﴿لقوله ﷺ لاتحل الصدقة لغني﴾ (یعني غني ته زکوة اخیستل حلال نه دي).

(۹۹) قوله وعبده ای لایدفع الی عبدالغنی، یعني د غني شخص غلام ته هم زکوة ورکول جائز نه دي ځکه چې د مملوک مال د مولی ملک وي نو د غني مملوک ته زکوة ورکول غني ته زکوة ورکول دي کوم چې جائز نه دی، همداشان د غني شخص نابالغ کوچني بچی ته زکوة ورکول جائز نه دي ولی چې نابالغ د خپل پلار د مال له وجه غني شمارل کیږي البته بالغ اولاد د پلار د غناء له کبله غني نه شمارل کیږي په دي وجه که د غني بالغ اولاد فقیر وي نو هغوئ ته زکوة ورکول جائز دي.

(۱۰۰) قوله وبنی هاشم ای لایدفع الی بنی هاشم، یعني بنوهاشم ته زکوة ورکول جائز نه دی ﴿لقوله ﷺ ان هذه الصدقات إنما أوساخ الناس وإنها لا تحل لمحمد ولا لآل محمد﴾ (یعني صدقات د خلګو خیري دي او دا محمد ﷺ او د آل محمد ﷺ ته حلال نه دي)، له بنوهاشم څخه مراد حضرت علي ؓ او د هغه اولاد، حضرت عباس ؓ او د هغه اولاد، حضرت جعفر ؓ او د هغه اولاد، حضرت عقیل ؓ او د هغه اولاد او حارث ؓ بن عبدالمطلب او د هغه اولاد دی.

ف: د بنوهاشم مذکوره څلورو طبقو لپاره صدقه د دوئ د اکرام په وجه حرامه شوي ده ځکه چې هغوئ د جاهلیت او اسلام په دواړو زمانو کې د نبي کریم ﷺ نصرت او مدد کړی دی باقي ابولهب او د هغه اولاد هم له بنوهاشم څخه دي مګر څرنګه چې ابولهب نبي کریم ﷺ ته تکلیفونه رسولي وو په دي وجه هغه او د هغه اولاد دي اکرام مستحق نه دي سره له دي چې د هغه اولاد وروسته مسلمان شوی وو لهذا د دوئ لپاره صدقه حلاله ده کمافي الشامیة: قال في الحواشي السعدیة ان آل ابی لهب ینسبون ایضا الی هاشم وتحل لهم الصدقة فان من اسلم من اولاد ابی لهب غیر داخل لعدم قرابته وهذا احسن جدا (ردالمحتار: ۲/۷۲)

ف: د مفتی به قول مطابق ساداتو ته زکوة ورکول جائز نه دي همداشان د ساداتو په خپل منځ کې یو بل ته زکوة ورکول هم جائز نه دي په دي باره کې د حضرت مولانا مفتی محمد شفیع نورالله مرقده فتوی ملاحظه کړئ، فرمایي: ظاهر مذهب او مفتی به مذهب حنفیه دادی چې ساداتو ته زکوة ورکول جائز نه دي په درمختار کې دي، ثم ظاهر المذهب اطلاق المنع قوله اطلاق المنع یعنی سواء فی ذالک کل الازمان وسواء فی ذالک دفع بعضهم لبعض ودفع غیرهم لهم الخ (عزیز الفتاوی: ۱/۳٦۱)

(۱۰۱)قوله وموالیهم ای لایدفع الی موالی بنی هاشم ،یعنی دبنوهاشم ازاده کړل شوی غلام ته هم زکوة ورکول جائزنه دي ځکه چې ددوئ غلام دحرمت زکوة په حق کې پخپله ددوئ (بنوهاشم )په حکم کې دی ﴿ لقوله ﷺ وَإِنَّ مولى القوم من أنفسهم إنَّ الصَّدَقَةَ لاتحِلُّ لنا ﴾(یعنی دکوم قوم مولی دهغه قوم کس وي اومونږ لپاره صدقه حلاله نه ده).

(۱۰۲)یعنی که مزکی (زکوة اداء کونکي )چاته زکوة ورکړاودهغه غالب گمان داوو چې دادزکوة مصرف دی بیامعلومه شوه چې هغه کس خویاغنی دی یاهاشمی دی یاکافردی ،یایې دشپې په تاریکۍ کې زکوة ورکړبیابنکاره شوه چې ده خپل پلاریاخپل زوی ته زکوة ورکړی دی نودطرفینوپه نزددمزکی زکوة اداء شوې ده دوهم ځل زکوة اداء کول لازم نه دي .

ف:دامام ابویوسف ؒ په نزدزکوة نه ده اداء شوی لهذادوهم ځل زکوة ورکول لازم دي ، ولې چې دده خطاء په یقین سره ښکاره شوه اودمزکی لپاره دچادزکوة مصرف والی یانه مصرف والی علم حاصلول ممکن هم وو اوس چې ده دزکوة نه مصرف والی معلوم نه کړنودا غفلت دمزکی له طرفه دی په دي وجه دغلطی په صورت کې اعاده لازمه ده ،دطرفینودلیل دادی چې معن بن یزید ﷺ فرمایې چې زماپلاریزید ﷺ څه اشرفی راواخیستې ترڅوهغه صدقه کړي نودایې په مسجدکې له یوه شخص ته کښېښودي بیامادااشرفی رواخیستې اوراغلم نوزماپلاروویل والله ماستانیت نه وو کړی نوما دامعامله په دربار رسالت کې وړاندي کړه نونبی کریم ﷺ وفرمایل ای یزیده ستالپاره هغه ثواب دی کوم چې تانیت کړی وو اوای معنه !ستالپاره دااشرفیانې دي کومې چې تااخیستې دي ،نوپه حدیث کې دانښته چې نبی کریم ﷺ یزیدته دزکوة داعادي حکم وکړلهذامعلومه شوه چې که په غیرمصرف کې دزکوة له اداءکولوڅخه وروسته دغیرمصرف والی علم حاصل شونوپرمزکی باندي اعاده زکوة واجبه نه ده.

ف:دطرفینوقول راجح دی کمافی الدرالمختار:دفع بتحرفبان انه عبداومکاتبه اوحربی ولومستامنااعادهاوان بان غناه اوکونه غنیااوانه ابوه اوابنه اوامرأته اوهاشمی لایعیدلانه اتی بمافی وسعه حتی لودفع بلاتحرلم یجزان اخطا(الدرعلی هامش الشامیة:۲/۷۴)

(۱۰۳)قوله ولوعبده اومکاتبه لاای لوظهران المدفوع الیه عبدالمزکی اومکاتبه فلایصح ،یعنی که زکوة ورکونکی یوڅوک مصرف زکوة وګڼی اوکوة یې ورکړبیامعلومه شوه چې هغه خودده غلام وو یادده مکاتب وو نودده زکوة نه اداء کیږي ولې چې په غلام کې دمالک والی اهلیت معدوم دی په دي وجه تملیک معدوم شوحال داچې تملیک رکن دی،اوخپل مکاتب ته دزکوة ورکولوپه صورت کې هم زکوة نه اداء کیږي ځکه چې مکاتب دزکوة ورکولوپه صورت کې تملیک کامل نه دی ولې چې دمکاتب ګټه دمولی حق وي.

(۱۰۴)یعنی کوم فقیرته دومره زکوة ورکول چې په هغه سره فقیرغنی شې مکروه دی مثلافقیر ته دوه سوه درهمه ورکول مکروه دي ولې چې دوه سوه درهمه دسپینوزرونصاب دی اودنصاب مالک غنی شمارل کیږي البته زکوة زکوة اداء کیږي ځکه چې فقیرته له زکوة ورکولوڅخه وروسته فقیرغنی کیږي لهذا بوقت اداء دده دفقیروالی په وجه سره زکوة ورکول جائزدی اوکوة اداء کیږي ،قوله وندب عن السوال .یعنی فقیرته دومره زکوة ورکول مستحب دی چې هغه له سوال کولوڅخه مستغنی شې ځکه چې سوال کول ذلت دی لهذاپه دومره اندازه ورکولوسره فقیرله دي ذلت څخه بچ پاتې کیږي.

ف:مګر کراهت هغه وخت دی چې هغه ذی عیال نه وي او مقروض نه وي نو که دچاعیال وو نو هغه ته دومره زکوٰة ورکول چې که هغه دهغه پرعیال تقسیم کړای شي نو هریوه ته له دوسوه درهمه څخه لږ رسیږي بلاکراهته جائزدی همدا حکم په دي صورت کې هم دی چې مقروض ته دومره زکوٰة ورکول چې له قرض اداء کولو څخه وروسته له ده سره تردوه سوه لږدرهم پاتې شي ،کمافی شرح التنویر:(الااذاکان )المدفوع الیه (مدیونااو)کان )صاحب عیال)بحیث (لوفرقه علیهم لایخص کلا) اولایفضل بعددینه.(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲/۷۳)

ف:دامام زفر رحمه الله په نزد فقیرته په بقدرنصاب زکوٰة ورکولوسره زکوٰة نه اداء کیږي ولی چې په دي صورت کې غنی له اداء سره مقارنه ده نوګویاغنی شخص ته دزکوٰة ادائیګی وشوه حال داچې غنی ته په زکوٰة ورکولوسره زکوٰة نه اداء کیږي، امام زفر رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې غنی کیدل دزکوٰة داداء حکم دی اوحکم شی له شي څخه وروسته وی لهذا غنی له اداء څخه وروسته ده اواداء په وخت کې فقیردی لهذازکوٰة فقیرته ورکړل شوی دی په دي وجه زکوٰة اداء کیږي مګردمقارنت غنی له وجه څخه مکروه دی لکه دنجاست سره قریب چې لمونځ کول مکروه دی.

ف:که دائن دمدیون مفلسي اودخوارحالت په لیدلوسره خپل پوراوقرض ده ته په زکوٰة کې ورمعاف کړي نودتملیک دنه وجودله وجه په دي شان سره زکوٰة نه اداء کیږي اوکه ده ته دزکوٰة روپی ورکړي اوبیایې پخپله قرضه کې وصول کړي نوپه دي شان کولوکې څه حرج نشته .(حقانیه :۴/۷۲)

(۱۰۵)یعنی دزکوٰة مال له ښار څخه بل ښارته منتقل کول مکروه دي بلکه له کوم قوم څخه چې زکوٰة اخیستل شوی دی دهغه قوم پرفقیرانوتقسیمول په کاردي ولی چې نبی کریم ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه ته فرمایلي وو خذهامن اغنیائهم (ای المسلمین) وردهافی فقرائهم(ای المسلمین )(یعنی زکوٰة دمسلمانانوله مالدارانو څخه واخله اودهمدوئ فقیرانوته یې ورکړه )مطلب دادی چې دکوم ځای له مالدارانو څخه زکوٰة اخیستل شوی دی دهغه ځای په فقیرانودي تقسیم کړای شي ،هوکه په بل ښارکې دمزکی قریبان اوسیدل نوهغوئ ته منتقل کول مکروه نه دي ولی چې په دي کې له ثواب زکوٰة څخه علاوه صله رحمی هم ده ،یادبل ښارخلک دیرمحتاج وي نوهم دزکوٰة په منتقل کولوکې څه کراهت نشته ولی چې له زکوٰة څخه مقصوددمحتاج حاجت دفع کول دي نوکوم کس چې دیرمحتاج وي هغه زیات مستحق دی.

(۱۰۶)له چاسره چې دیوې ورځې خوراک وي هغه دي سوال نه کوي یعنی دداسې کس لپاره سوال کول جائزنه دي ﴿ لقوله ﷺ من سأل الناس عن ظهرغنی فإنه یستکثرجمرجهنم قلت یارسول الله وماظهرغنی قال ان یعلم ان عنداهله مایغدیهم ومایعشیهم ﴾(یعنی کوم شخص چې سره له غنی سوال کوي ګویاهغه دجهنم دسکروټوسوال کوي ماوویل یارسول الله ﷺ غنی څه ده ؟نبی کریم ﷺ وفرمایل غنی داده چې څوک په دي پوهیږي چې دده په کورکې دسهاراوماښام خوراک شته ).

ف:مګرددي مطلب دادی چې که له چاسره دیوي ورځې غذاوه هغه دي دغذاسوال نه کوي که له غذاڅخه ماسوادده کوم بل شی مثلاًجامووغیره ته ضرورت وو نوده لره دجاموسوال کول جائزدی کمافی شرح التنویر:(ولا)یحل ان (یسال) شیئامن القوت (من له قوت یومه) قال ابن عابدین: قیدبقوله شیئامن القوت لان له سؤال ماهومحتاج الیه غیرالقوت کثوب.(الدرالمختارمع ردالمحتار:۲/۷۵)

## بَابُ صَدَقَةِ الْفِطْرِ

دا باب د صدقة الفطر په بيان کې دی

فطر له فطرة څخه مأخوذ دی د نفس او خلقت په معنی سره ،څرنگه چې صدقه د هر نفس له طرفه څخه ورکول کيږي په دي وجه دي ته صدقة الفطر ويل کيږي .د صدقة فطر او کوة په منځ کې مناسبت ظاهر دی چې دواړه عبادات ماليه دي ليکن د زکوة درجه اعلى ده ولی چې دا په کلام الله سره ثابت دی ځکه يې زکوة مخته کړ.

په صدقة الفطر کې اضافة له قبيلې د اضافة دشي الى شرطه دی لکه چې په حجة الاسلام کې دی ،يا له قبيلې د اضافة الشئ الى سببه دی لکه په حج البيت او صلوة الظهر کې ،د صدقة الفطر سبب ، رأس دی او شرط فطر دی ،او له صدقې څخه مراد هغه عطيه ده له کومې څخه چې مقصود ثواب وي . (الجوهرة النيرة ۱/۳۲۰)

**الحكمة** :ان الصائم بامتناعه عن الطعام في بياض نهاره في رمضان عرف مقدار حرارة الجوع فهو يطعم الفقير والبائس المسكين في هذا اليوم المبارک شکرالله تعالى على نعمة الغنى اذلم يحوجه الى احد في هذا اليوم العظيم الذى يكون فيه المسلمون في سرور وحبور فاعطاء زكوة الفطر للفقير والمسكين فيه رفع لمشقة الجوع وتخفيف التأثير الذى يكون في نفس الفقير اذيرى غيره في هذا اليوم في زينة من الملبس وشيع من الدسم قدقال ﷺ (اغنوهم عن المسألة في مثل هذا اليوم)،(حكمة التشريع)

(۱۰۷)تَجِبُ على كل حُرٍّ مُسْلِمٍ ذِي نِصَابٍ فَضَلَ عن مَسْكَنِهِ وَثِيَابِهِ وَأَثَاثِهِ وَفَرَسِهِ وَسِلَاحِهِ وَعَبِيدِهِ(۱۰۸)عن نَفْسِهِ وَطِفْلِهِ الْفَقِيرِ وَعَبِيدِهِ لِلْخِدْمَةِ وَمُدَبَّرِهِ وَأُمِّ وَلَدِهِ(۱۰۹)لَا عن زَوْجَتِهِ وَوَلَدِهِ الْكَبِيرِ

**ترجمه** :صدقه فطر واجب ده پر ازاد مسلمان باندي کوم چې د داسې نصاب مالک وي کوم چې دده له مسکن څخه او دده له جامو څخه او دده له اسبابو څخه او دده له آس څخه او دده له اسلحې څخه او دده له غلام څخه زائد وي دخپل ځان له طرف څخه ،دخپل فقيربچی له طرف څخه ،او دخپل خدمتکار غلام له طرف څخه او دخپل مدبرله طرف څخه او دخپلې ام ولد له طرف څخه دي اداء کړي ،نه دخپلې ښځې له طرفه او دخپل لوی زوی له طرف څخه .

**تشريح** :(۱۰۷)يعنی صدقه فطر واجب ده مگر د دي لپاره څه شرطونه دي .نمبر۱.ازادوالی ، نمبر۲.مسلمان والی ،نمبر۳.دمقدارنصاب مالک والی .نمبر۴.دده له کور ،جامو ،کورنی سامان ، دسورتيا له اسه ،اسلحې او دخدمت له غلامانو څخه به فاضل وي،صدقه فطر له ځکه واجب ده چې نبی کريم ﷺ په خپله خطبه کې وفرمايل﴿ أَدُّوا عن كل حُرٍّ وَعَبْدٍ الخ ﴾ (يعنی له هرازاد او غلام څخه صدقه اداء کړئ )څرنگه چې ادوا امردی او خبرواحد دی په دي وجه له دي څخه وجوب ثابتيږي، او دازادوالی شرط په دي وجه دی تر څو تمليک متحقق شي ځکه چې غلام خو پخپله مالک نه دی بل څوک به څرنگه مالک جوړ کړي ،دمسلمان والی شرط په دي وجه دی چې صدقة الفطر عبادت دی او کافر دعبادت اهل نه دی لهذا دکافرپه اداء کولو سره ثواب نشته ،او دنصاب مالک والی په دي وجه شرط دی چې نبی کريم ﷺ فرمايلي دي﴿ لَا صَدَقَةَ إِلَّا عن ظَهْرِ غِنًى﴾ (يعنی صدقة الفطر نشته مگر په غنی سره )او د صدقة الفطر په نصاب کې دا شرط هم نشته چې نامی به وي بلکه دغيرنامی نصاب پر مالک باندي هم صدقه فطر واجب ده ،او له جامو وغيره څخه د زائدوالی شرط په دي وجه دی چې دا شيان په حاجت اصليه سره مشغول دي او مشغول بحاجت اصليه معدوم شمال کيږي .

ف:دسرو او سپینو زرو، مال تجارت او په کورکې دروزمره استعمال له شیانو څخه دزائد سامان قیمت به لګوي اوله دي سره به نغدي یوځای کړي ددي پنځو مجموعه یا که له دوئ څخه دبعض ۸۷،۴۷۹گرامه سروزرو یا ۶۱۲،۳۵ گرامه سپینوزروسره برابرشي نوصدقة الفطر واجب ده،له دریوجوړوجامو څخه زائدلباس او درېډیو او ټیلویژن په شان خرافات په انساني حاجتونو کې داخل نه دي په دي وجه به دهغوئ دقیمت حساب هم کیږي.(احسن الفتاوی: ۴/۳۸۳)

(۱۰۸)قوله عن نفسه الخ ای یجب اخراجها عن نفسه الخ ،یعنی صدقه فطردي له خپله طرفه څخه او دخپل نابالغ اولادله طرفه څخه اداء کړي ولی چې دصدقة الفطرسبب داسې رأس او ذات دی په کوم چې انسان خرچه کوي او پرهغه متولی وي او انسان پرخپل ځان اونابالغ اولادخرچه کوي اومتولی وي،اومولی دي دخپلو غلامانو،مدبرانو اوخپلي ام ولدی له طرفه صدقه فطراداء کړي ولی چې ددوئ خرڅه هم مولی برداشتوي او پردوئ ولایت هم مولی ته حاصل دی.

(۱۰۹)قوله لاعن زوجته وولده الکبیرای لاتجب علی الرجل عن زوجته وولده الکبیر،یعنی پرخاوند دخپلي ښځي او پرپلار دخپل بالغ اولادله طرفه صدقه فطراداء کول واجب نه دي که څه هم هغه ده هغه په عیال کې داخل وي ولی چې خاوندلره په ښځه چې کوم ولایت حاصل دی هغه ناقص دی ځکه چې دنکاح له امورو څخه علاوه خاوندته پرښځه هیڅ ولایت حاصل نه دی،همداشان پلارلره په خپل بالغ اولادکوم ولایت حاصل نه دی بلکه هغه دخپل نفس په باره کې خود مختاردی.

ف:که خاوند دښځي او پلار دخپل اولادله اجازي بغیرفطره اداء کړه نو استحساناً اداء کیږي په دي شرط چې هغه دده په اولادکې وي ولی چې عادةً اجازه ثابته ده اوکوم شی چې عادةً ثابت وي هغه داسې لکه چې صراحةً ثابت وي کمافی شرح التنویر:ولوادی عنهما(زوجته وولده الکبیر)بلااذن اجزأه استحساناللاذن عادةای لوفی عیاله والافلا،قال ابن عابدین (قوله لوادی عنهما)ای عن الزوجة والولدالکبیروقال فی البحروظاهرالظهیریة انه لوادی عمن فی عیاله بغیرامره جازه مطلقابغیرتقییدبالزوجة والولد(الدر المختار مع رد المحتار:۲/۸۲)

(۱۱۰)وَمُکَاتَبِهِ(۱۱۱)وَعَبْدٍاَوْعَبِیْدٍلَّهُمَا(۱۱۲)وَیَتَوَقَّفُ لَوْمَبِیْعًابِخِیَارٍ(۱۱۳)نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّاَوْ دَقِیْقِهٖ اَوْسَوِیْقِهٖ اَوْزَبِیْبٍ اَوْصَاعٍ مِنْ تَمْرٍ اَوْشَعِیْرٍ(۱۱۴)وَهُوَثَمَانِیَةُ اَرْطَالٍ(۱۱۵)صُبْحَ یَوْمِ الْفِطْرِ فَمَنْ مَاتَ قَبْلَهٗ اَوْاَسْلَمَ اَوْوُلِدَبَعْدَهٗ لَاتَجِبُ(۱۱۶)وَصَحَّ لَوْقَدَّمَ اَوْاَخَّرَ

**توجمه**:او دخپل مکاتب له طرف څخه (صدقه ورکول واجب نه دي)،او دیوه یا څو مشترک غلامانو له طرف څخه،او موقوف به وي که یې خرڅ کړسره له خیاره،نصف صاع غنم دي ورکړي یا ددي اوړه یاستو یاکشمش یایوه صاع خرما وي یااوربشې،او صاع اته رطله ده،دعید الفطرپه سهارنو که کوم شخص وفات شوله دي څخه مخکې یامسلمان شو یاپیدا شو له دي څخه وروسته نوپرهغه باندي واجب نه ده،او صحیح ده که یې له دي څخه وړاندي ورکړه یایې وروسته ورکړه.

**تشریح**:(۱۱۰)قوله ومکاتبه ای لاتجب علی المولی عن مکاتبه ،یعنی پرمولی باندې دمکاتب صدقة الفطرواجب نه ده ولی چې مولی لره پرمکاتب باندي کامل ولایت حاصل نه دی.(۱۱۱)قوله وعبداوعبیدلهماای لاتجب عن عبداوعبیدمشترک بینهما، یعنی که یوغلام یادیرغلامان ددوو شریکانوسره شریک وو نوپر شریکانو کې پریوه هم ددي غلام صدقة الفطر واجب نه ده ولی چې ددوا ړوولایت هم ناقص دی او مؤنت هم ناقص دی.

(۱۱۲)قوله ويتوقف لومبيعا بخيار اى يتوقف وجوب صدقة الفطر لوكان المملوك مبيعا بخيار ،يعنى كه كوم غلام په شرط دخيارسره خرڅ شوكه خيار بائع لره وي اوكه مشتري لره نودده صدقة الفطربه موقوف وي ياكه مشتري واخيستى نوصدقة فطرپرمشترى باندي واجب ده اوكه يې پريښودى نوپرمالك باندي واجب دہ ځكه چې صدقة الفطرپرملک باندي مبنى ده اوملک موقوف دى لهذا صدقة الفطربه هم موقوفه وي.

(۱۱۳)قوله نصف صاع ،مرفوع ده دمبتداء محذوف لپاره خبردى اى هى نصف صاع ،يادتجب له فاعل څخه بدل ده اى تجب الصدقة نصف صاع ،يعنى كه يې په غنمويادهغوپه اوړوياستواوياكشمشوسره صدقه فطراداء كوله نودحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نزددي نيمايې صاع اداء كړي اوكه يې په خرماياواوربشوسره اداء كوله نويوه صاع (بحساب درهم ۲۷۰تولې اوبحساب مثقال ۲۷۳تولې )به وركوي ﴿ لقوله ﷺ أدواعن كل حرٍ او عبدٍ صغيرٍ او كبيرٍ نصف صاعٍ من برٍ او صاعًا من تمرٍ او صاعًا من شعيرٍ ﴾ (يعنى صدقه فطرد هرغلام اوازادله طرفه اداء كړئ خواه كه صغيروي ياكبيرنيمه صاع دغنمويايوه صاع داوربشو)همدادجمهورصحابه كرامو رضي الله عنهم اوخلفاءراشدينوابن مسعوداوابن عباس اوحضرت ابن زبير رضي الله عنه مذهب دى ،دصاحبينوپه نزدكشمش ،داوربشواوخرماوپه حكم كې دي ځكه چې كشمش اوخرماوي په مقصوديعنى تفكه اوخوړتياحاصلولوكې سره نژدې دي ،دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدكشمش دغنموپه حكم كې دي ولى چې په دوئ دواړوكې هريوله خپلوتماماواجزاءوسره خوړل كيږي ،پاته شوه خرماواوربشې نودخرماوو منده كه غورځول كيږي اوداوربشوبوسه ايستل كيږي نوكشمش پرغنموقياسول مناسب دي نه په اوربشواوخرماوو باندي .

ف :دصاحبينوقول مفتى به دى كمافى الدرالمختار:وجعلا(اى الصاحبان الزبيب )كالتمروهوروايةالامام وصححه البهنسى وغيره وفى الحقائق والشرنبلالية عن البرهان وبه يفتى ،وقال ابن عابدين :لكن الصاع من الزبيب منصوص عليه فى الحديث فلاتعتبرفيه القيمة (الدرالمختارمع الشامية :۲/۸۳ )،وقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد:واعلم انه روى عن الامام ابى حنيفة فى زبيب روايتان فى رواية جعله كالحنطة وفى الاخرجعله كالتمروهوالمختاروعليه الفتوى لانه اذااختلفت الروايات عن الامام يؤخذبمااخذبه الصاحبان لان لهماالمقام بعده (هامش الهداية:۱/۱۹۲ )

ف :دامام شافعى رحمه الله په نزدپه پورته مذكوره شيانوكې چې په كوم يوه سره هم صدقه فطراداء كوي نوپوره صاع به وركوي حتى كه يې غنم وركول هم به پوره صاع وركوي ځكه چې حضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه فرمايې :﴿ كنانخرج على عهدرسول الله صلى الله عليه وسلم صاعًا من طعامٍ او صاعًا من شعيرٍ او صاعًا من تمرٍ او صاعًا من أقطٍ ﴾ (يعنى موږدنبى كريم ﷺ په زمانه كې صدقه فطروركوله دطعام يوه صاع يادااوربشويوه صاع يادخرماوو يوه صاع يادكشمشويوه صاع يادپنيريوه صاع )،امام شافعى رحمه الله ته ځواب وركړل شوى دى چې دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه په حديث كې بې شكه ديوې صاع ذكردى مګرصحابه كرامو رضي الله عنهم احتياطايوه صاع اداء كوله له دې څخه نصف بطورواجب اونصف بطورتبرع اداء كوله حال داچې زموږكلام په وجوب كې دى.

(۱۱۴)يعنى دطرفينوپه نزدصاع اته عراقى رطله ده يعنى په كومه كې چې داتورطلودوزن په اندازه سره غنم وغيره ځايږي،اودامام ابويوسف رحمه الله په نزدصاع پنځه رطله اوديوه رطل دريمه برخه ده،دامام ابويوسف رحمه الله دليل دنبى كريم ﷺ ارشاددى﴿صاعنا أصغر الصيعان﴾(يعنى زموږصاع ترټولو صاعوڅخه

كوچنی ده )اوظاهره ده چې دپنځه رطله اوثلث رطل والاصاع تراته رطله والاصاع څخه كوچنی ده ،دطرفينو رحمهما الله تعالى دليل دحضرت جابر ﷺ روايت دی چې ﴿ انه ﷺ يَتَوَضَّأُ بِمُدِّ رِطْلَيْنِ وَيَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ ثَمَانِيَةَ أَرْطَالٍ ﴾ (يعنى نبی كريم ﷺ په دوه رطله اوبو سره اودس كاوو اوپه يوه صاع يعنى اته رطله اوبو سره يې غسل كاوو )نوله دي حديث څخه معلومه شوه چې صاع اته رطله ده .

ف:ځيني حضرات فرمايي چې دطرفينو او امام ابويوسف رحمه الله ترمنځ اختلاف حقيقي نه دی بلكه لفظي دی ځكه چې امام ابويوسف رحمه الله دصاع اندازه په مدنی رطل سره كړي ده كوم چې ديرش استاره (يو استار شپږ درهمه اويو دانق وي او دانق د درهم دشپږمې برخې يوه سكه ده )ده او صاع عراقی شل استاره ده نوكله چې داته عراقی رطلو والاصاع دپنځو رطلو او ثلث رطل والاله صاع سره موزانه وكړل شي نو دواړه سره برابري دي ،همدا صحيح معلوميږي ځكه چې امام محمد رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله داختلاف ذكر نه ده كړی كه واقعی دامام ابويوسف رحمه الله اختلاف وای نو امام محمد رحمه الله به ضرور ذكر كاوو كمافی فتح القدير:وقيل لاخلاف بينهم فان ابويوسف لماحرره قدره وجده خمسة وثلثابرطل اهل المدينة وهو اكبر من رطل اهل بغداد لانه ثلاثون استاروالبغدادی عشرون وهو الاشبه لان محمدالم يذكر فی المسئلة خلاف ابی يوسف.(فتح القدير: ٢/٢٣١)

(١١٥)قوله صبح يوم الفطر،منصوب على الظرفية والعامل فيه تجب اى تجب صدقة الفطر فی صبح يوم الفطر ،يعنى زموږ په نزد دعيد الفطر له صبح صادق څخه صدقة الفطر اداء كول واجبيږي ﴿لحديث ابن عمر ﷺ قال كان رسول الله ﷺ يامرنا ان نخرجها قبل الصلوة و كان رسول الله ﷺ يقسمها قبل ان ينصرف الى المصلى ويقول اغنوهم عن الطواف فی هذا اليوم ﴾ (يعنى نبی كريم ﷺ موږته حكم كاوو چې موږ له عيد الفطر څخه وړاندي صدقه فطر اداء كړو اوپخپله نبی كريم ﷺ به عيدگاه ته له تللو څخه وړاندي صدقه تقسيموله اوفرمايل به يې چې فقراء نن ورځ په كورنوله طواف كولو څخه بې نيازه كړئ )نو كه كوم كس دعيد الفطر له صبح صادق څخه وړاندي وفات شو يا فقير شي نو پر ده صدقه فطر واجب نه ده همدا شان كه كوم كافر له طلوع فجر څخه وروسته مسلمان شو يا كوم بچی له طلوع فجر څخه وروسته پيدا شو نو په ده هم صدقه فطر واجب نه ده ځكه چې په دي دواړو صورتونو كې دوجوب صدقه سبب موجود نه دی .

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزد دصدقه فطر دوجوب اداء وخت له غروب افتاب څخه شروع كيږي ځكه چې دصدقه فطر دوجوب سبب په فطر پسې مختص ده او فطر يعنى دروژې ماتولو وخت له غروب افتاب څخه شروع كيږي په دي وجه وويل شول چې دصدقه فطر وجوب اداء درمضان داخري ورځې له غروب سره متعلق دی نو دده په نزد كه داختر په شپه له صبح صادق څخه وړاندی كوم كافر مسلمان شو يا كوم بچی پيدا شو نو پر ده صدقه فطر واجب نه ده ،امام شافعی رحمه الله ته ځواب وركړل شوی دی چې صدقه فطر بې شكه له فطر سره مختص ده مګر له فطر څخه مراد دصوم ضد دی او دصوم تعلق له ورځې سره وي نه له شپې سره لهذا دفطر تعلق به هم له ورځې سره وي نه له شپې سره ،او دورځې شروع له صبح صادق څخه كيږي نو نه له غروب افتاب څخه لهذا دصدقه فطر وجوب اداء به هم له صبح صادق سره متعلقه وي .

ف:دصدقه فطرپه اداءكولوكې مستحب داده چې خلګ دې عيدګاه ته ترتللووړاندې اداء كړې ترڅودفقراءو زړونه داخترد لمانځه لپاره فارغ شي كمافي شرح التنوير:(ويستحب اخراجهاقبل الخروج الى المصلى بعدطلوع فجر الفطر)عملابامره وفعله ﷺ (الدر المختار على هامش رد المحتار:۲/۸۵)

(۱۱۶)يعنې كه يې صدقه فطرداخترله ورځې وړاندې اداء كړه نوهم جائزده ولې چې سبب وجوب ثابت دى(يعنې داسې رأس اوذات پركوم چې انسان خرڅ كوي اوپرهغه متولى وي)لهذا داديښګى زكوة اداءكولو سره مشابه ده ،اوكه چا صدقه فطرداخترله ورځې څخه مؤخركړه نودادده له ذمې څخه نه ساقطيږي بلكه پرده به واجبوي اوپرده به ددې اداء كول لازم وي ځكه چې دامعقول قربت مالى دى نودابه دزكوة په شان له وجوب څخه وروسته نه ساقطيږي الاداچې اداءيې كړي.

ف:صدقة الفطرله رمضان شريف څخه وړاندې په اداءكولوكې اختلاف دى ليكن اصح قول دادى چې له رمضان شريف څخه وړاندې اداء كول يې هم جائزدي كه څه هم ښه داده چې دعيد الفطرپه ورځ اداءشي كمافي الدر المختار:وصح ادازها اذاقدمه على يوم الفطراواخره بشرط دخول رمضان فى الاول هو الصحيح وبه يفتى جوهرة وبحر عن الظهيرية لكن عامة المتون والشروح على صحة التقديم مطلقاوصححه غيرواحدورجحه فى النهرونقل عن الولوالجية انه ظاهر الرواية قلت فكان هو المذهب ،وقال ابن عابدين:فان المانعين جمع يسيروالمجوزين جم غفيروالاعتماد على ماعليه الجم الكثير (الدر المختار مع الشامية:۲/۸۵)

## كِتَابُ الصَّوْمِ

داكتاب دروژې په بيان كې دى

صوم په لغت كې دمطلق امساك په معنى دى خواه كه له هرشي څخه امساك وى اوكه هروخت وي له همدې څخه ارشادبارى تعالى دى ﴿ إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمَٰنِ صَوْمًا اى امساكاعن الكلام ﴾ اودشريعت په اصطلاح كې له سهارڅخه ترماښام پورې له مفطرات ثلاثة (اكل ،شرب ،جماع)څخه بالاراده ځان ساتلوته صوم ويل كيږي.

صوم هم دصلوة په شان عبادت بدني دى لهذامناسبه داوه چې له صلوة سره يې متصل ذكركړي واى مګردقران كريم داقتداء له وجه يې زكوة په صوم مقدم ذكركړقال الله تعالى ﴿ اقيموا الصلوة وآتوا الزكوة﴾ په دې ايت مبارك كې له صلوة سره متصل زكوة ذكركړى دى نومصنف رحمه الله هم دصوم پرځاى زكوة له صلوة سره متصل ذكركړ.

**الحكمة** : ان الانسان اذاصام وذاق مرارة الجوع حصل عنده عطف ورحمة على الفقراء على الفقراء والمساكين الذين لايجدون من القوت مايسدون به الرمق ولقدورد ان سيدنايوسف عليه السلام كان لاياكل ولايتناول طعاماالااذااشتدعليه الجوع لاجل ان يتذكرالبائس الفقيروالمحتاج المضطر(حكمة التشريع)

ف:روژه په شپږقسمه ده له دې څخه درې قسمه داسې دي چې دهغولپاره له شپې څخه نيت كول ضروري دي قضاءرمضان، نذرمطلق اودكفارې روژې ،اودرې قسمه داسې دي چې دهغولپاره دورځې نيت كول هم كافي دي درمضان روژې، دنذر معين روژې ،اونفل روژې كماياتى التفصيل فى المتن.

(۱)هوترك الأكل والشرب والجماع من الصبح إلى الغروب بنية من أهله

**ترجمه**،روژه پرېښودل دي دخوراک څښاک اوجماع له سهار څخه ترغروب لمرپوري سره له نیته داهل صوم له طرف څخه .

**تشریح**:(۱)دادروزي اصطلاحي تعریف دی یعنی کوم شخص چې دروزي اهل وي دهغه له صبح صادق څخه ترمابنام یعنی دلمرترلویدلوپوري دروزي په نیت سره له خوراک څښاک اوجماع څخه حقیقة یاحکماً ځان ساتلونوم روژه ویل ده.

**ف**:دروزي داهل والی مطلب دادی چې مسلمان ،عاقل ،بالغ اوله حیض اونفاس څخه پاک وي ،حقیقة ځان ساتل دادي چې خوراک څښاک اوجماع ته بلکل تعرض ونه کړي اوحکماً ځان ساتل دادي چې په هیره سره څه وخوري یاوڅښي څرنګه چې په دي سره دده روژه نه ماتیږي لهذاداحکماله مفطرات ثلاثة څخه ځان ساتل دي په دي وجه ویل کیږي چې ښه تعریف دادی ،الامساک عن الاکل والشرب والجماع حقیقةاوحکما.

**ف**:په طویل الاوقات ځایونوکې دروزي حکم دادی چې دمعمولی فرق په وجه سره خوښکاره ده چې حکم نه بدلیږي لیکن که غیرمعمولي فرق وو مثلاپه یوځای کې ورځ شل یادوه ویشت ګانټې وه اودوه یاڅلورګانټې ښپه وه نوبیاهم دقران او حدیث دعمومي احکاموتقاضادادہ چې روژه له طلوع فجرڅخه ترغروب شمس پوري وي اوفتوی هم پردي ده .البته ضعیفواوکمزوروکسانوته دمؤخرکولواجازت ورکول کیدای شي ځکه چې فقهاودلوړي اوتندي هلاکت پیښونکی شدت هم دروزي دماتولولپاره عذرګڼلی دی ،لیکن په کوم ځای کې چې یوه طویله زمانه ورځ اوبیاهمداشان دشپې اوږده سلسله وي نوپه هغه ځای کې لکه څرنګه چې دلمانځه دوختونوتعین په اندازه سره کیږي همداشان درمضان دراتلو او دروزي داوقاتوتعین هم (بایدپه اندازه سره وشي )،ددا سې ځایونوداوسیدونکولپاره دهغوځایونو مطابق عمل کول په کاردی کوم چې دوئ ته قریب وي اوپه هغوکې دمعمول په شان ورځې اوشپې دراتلوسلسله وي .(ماخوذازفقهی مسائل:۱/۱۸۰)

(۲)وَصَحَّ صَوْمُ رَمَضَانَ وهو فرض وَالنَّذْرُ الْمُعَيَّنُ وهو وَاجِبٌ وَالنَّفْلُ بِنِيَّةٍ من اللَّيْلِ إلَى ما قَبْلَ نِصْفِ النَّهَارِ وَبِمُطْلَقِ النِّيَّةِ وَنِيَّةِ النَّفْلِ (۳)وما بَقِيَ لم يَجُزْ إلَّا بِنِيَّةٍ مُعَيَّنَةٍ مُبَيَّتَةٍ

**ترجمه** :اوصحیح ده درمضان روژه کومه چې فرض ده اودنذرمعین روژه کومه چې واجب ده اونفل په داسې نیت سره چې دشپې څخه بیادنصف النهارترمخکې پوري وي اوپه مطلق نیت سره اودنفلوپه نیت سره ،اوباقی روزي جائزنه دي مګرپه شپه کې په معین نیت سره .

**تشریح**:په عبارت کې وهو فرض حال دی له صوم رمضان څخه همداشان وهوواجب حال دی له النذرالمعین څخه ،اوبنیة جارومجرورمتعلق دی په صح پوري.

(۲)یعنی درمضان روزي کومې چې فرض دي،دنذرمعین روزي کومې چې واجب دي اونفل روزي،ددري قسمه روزو لپاره له شپې څخه بیادنصف النهارترمنځ په کوم وخت کې چې وغواړي نیت کولی شي اوداروژه په همدي نیت سره صحیح کیږي همداشان دمطلق روزي په نیت کولوسره هم درمضان روژه صحیح کیږي چې دفرضویا واجبویانفلونوم وانه خلي صرف دروزي نیت وکړي ،یادنفلی روزي نیت وکړي مثلاداسې ووایې چې زماسبادنفلي روزي دنیولونیت دی نوبیابه هم درمضان یانذرمعین روژه وي وجه یې

داده چې درمضان دمياشتې اونذرلپاره په متعينو ورځوكې كومه بله روژه مشروع نه ده نودرمضان مياشته دشارع له طرفه دمتعين والى له كبله دفرض روزولپاره متعينه ده همداشان دنذرلپاره مخصوصې ورځې دناذردمتعين كولوله وجه څخه متعينې دي اومتعين دتعين محتاج نه دى لهذاپه مطلق نيت سره موجوديږي اودغيرفرضوپه نيت سره هم.

دپورته ذكرشوي اجمال تفصيل څه په دي ډول سره دى چې روژه پردوه قسمه ده ،نمبر١.واجب (مرادفرض اوواجب دواړه دي)،نمبر٢.نفل دنفلي روزي لپاره ترنصف النهار مخكې نيت كول كافى ده په شپه كې نيت كول ضروري نه دى ﴿لحديث عائشة رضي الله عنها قالت دخل عليّ رسول الله صلى الله عليه وسلم ذات يوم فقال هل عندكم شيء فقلنا لا فقال إني إذا صائم ﴾ (يعنى نبى كريم ﷺ يوه ورځ كورته تشريف راوړى اوويې فرمايل ايا له تاسره دخوراک څه شى شته ماوويل ياويې فرمايل بس زه اوس صائم يم)له حديث شريف څخه ثابته شوه چې په شپه كې دنفلي روزي لپاره نيت كول ضروري نه دى.

اوواجب روژه پردوه قسمه ده ،نمبر١. معين يعنى كومه چې له يوي متعينې زمانې سره متعلقه وي لكه درمضان روزي (دكومولپاره چې درمضان مياشت متعينه ده )اودنذرمعين روزي دكومولپاره چې ديوې زمانې تعين وكړل شي مثلاً داسې وويل شي چې پرماباندي دخداى ﷻ لپاره درجب داولې عشري روزي لازمې دي ،نمبر٢.دواجب روزودوهم قسم غيرمعين دى يعنى كومې چې له يوې زمانې سره متعلقې نه وي لكه درمضان دقضاء روزي چې دهغوئ لپاره كوم وخت متعين نه دى اودنذرغير معين روژي چې دهغوئ هم كوم وخت متعين نه دى اودكفاراتوروژي لكه كفاره يمن ،كفاره صوم وغيره چې ددوئ لپاره هم كوم وخت متعين نه دى.

نودواجب روژي داولنى قسم حكم دادى چې دنوروروژوپه شان په شپه كې په نيت كولوسره جائزدي اوكه يې په شپه كې نيت ونه كړبلكه دسهاراووال په مابين كې يې نيت وكړنوبياهم جائزدي ﴿لحديث سلمة بن الاكوع ﷺ انه ﷺ امررجلامن اسلم ان اذن فى الناس ان من اكل فليصم بقية يومه ومن لم ياكل فليصم فان اليوم يوم عاشورا ﴾ (يعنى نبى كريم ﷺ داسلم قبيلې يو شخص ته امروكړچې په خلكوكې اعلان وكړه چې چاچې څه خوړلي يې نوهغه دي بقيه يوم امساک وكړي اوچاچې څه نه وي خوړلي هغه دي روژه ونيسي ځكه چې نن دعاشوراورځ ده )دادهغه وخت خبره ده چې دعاشوراروژه واجب وه نودا دليل دى چې كه پرچاباندي دكومې ورځې روژه واجب وي نوكه ده په شپه كې نيت نه وي كړى نوقبل الزوال نيت كول هم جائزدى.

(٣)دواجب روژي دوهم قسم (دكومې لپاره چې وخت متعين نه وي )حكم دادى چې ددي لپاره كې يې له صبح صادق څخه وړاندي نيت وكړنوجائزدى اوله طلوع فجرڅخه وروسته جائزنه دى ولى چې ددي قسم روژي لپاره كوم وخت متعين نه دى له رمضان شريف اوهغه ورځ چې په هغه كې روژه نيول ممنوع دي ماسواهروخت روژه نيولى شې لهذادورځې له شروع كيدلوڅخه وړاندي متعين كول ضروري دى ،همداحكم دظهار(دمسلمان كس دخپلې ښځې له خپلومحرماتوڅخه له يوي سره تشبيه وركولوته ظهارويل كيږي لكه چې خپلې ښځې ته ووايې چې ته پرماباندي زمادمورپه شان يې ) دروژوهم دى

دمصنف رحمه الله له قول ومابقی لم يجزالابنية معينة څخه دواجب ورژودادوهم قسم مراددی ددي قسم لپاره نيت له سهارڅخه وړاندي کول ضروري دی.

ف:داحنافوپه نزددهري ورځي دروژي لپاره جلاجلانيت کول ضروري دی حال داچي دامام مالک رحمه الله په نزدپه يونيت سره درمضان دټولي مياشتي روژه نيول صحيح دي ځکه چي دټولي مياشتي روژه دلمانځه په شان يوعبادت دی لهذا دټولولپاره يونيت کافی دی،احناف ځواب ورکوي چي روژه دلمانځه په شان نه ده ځکه چي دبعض روژوپه فاسدوالی دنورروژوفسادته مستلزم نه دی حال داچي دلمانځه دبعض حصي په فاسدوالی سره ټول لمونځ فاسديږي، همداراز دروژي هره ورځ جلاجلاعبادت دی ځکه چي دهرودووورځوپه مابين کي داسي وخت دی په کوم کي روژه نيول صحيح نه دی يعني دشپي وخت ،لهذادهري ورځي لپاره جلاجلانيت کول ضروري دی.

(۴)ويثبت رمضان برؤية هلاله أو بعد شعبان ثلاثين يوما (۵) وَلَا يُصَامُ يَوْمُ الشَّكِّ إِلَّا تَطَوُّعًا

**ترجمه**:اوثابتيږي رمضان دهغه دمياشتي په ليدلوسره يادشعبان ددېرشو ورځوپه پوره کيدلوسره ،اوروژه دي نه نيول کيږي دشک په ورځ مگرنفلي.

**تشريح**:(۴)يعني په نهه ويشتمه ورځ دسپوږمۍ په ليدلوسره رمضان ثابتيږي اوکه سپوږمۍ ونه ليدل شوه نودشعبان ديرش ورځي دپوره کړای شي اوپه دابله ورځ دي روژه ونيول شي ځکه چي نبی کريم ﷺ فرمايلي دي﴿ صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ وَأَفْطِرُوا لِرُؤْيَتِهِ فَإِنْ غُمَّ الْهِلَالُ عَلَيْكُمْ فَأَكْمِلُوا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلَاثِينَ يَوْمًا ﴾ (يعني چي مياشت وويني نوروژه ونيسئ اوچي مياشت ووينئ نو افطاروکړئ اوکه پيامياشت پټه شوه اومشتبه شوه نودشعبان ديرش ورځي پوره کړئ)

ف:له مذکوره پورته ذکرشوي حديث څخه داثابتيږي چي درمضان په ثبوت کي دنجوميانودقول اعتبارنشته که څه هم هغوئ عدول وي پخپله دمنجم لپاره هم پخپل حساب عمل کول جائزنه دی ځکه چي نبی کريم ﷺ روژه له دوعلاموسره تړلي ده په کوم کي چي هيڅ قسم تبديلي نه شي کيدای هغه دوه علامې دمياشت ليدل يادشعبان ديرش ورځي پوره کيدل دي، باقی دنجوميانوقول خواه که په څومره دقيقونظرياتوباندي هم مشتمل وي بياهم په هغه کي قطعيت نشته له همدي وجه خواکثردوئ رأيي سره يوله بله مختلفي وي کمافی الشامية:(قوله ولاعبرة بقول الموقتين )ای فی وجوب الصوم علی الناس بل فی المعراج لايعتبرقولهم بالاجماع ولايجوزللمنجم ان يعمل بحساب نفسه وفی النهر فلايلزم بقول الموقتين انه ای الهلال يکون فی السماء ليلة کذاوان کانواعدولا فی الصحيح کمافی الايضاح(ردالمحتار:۱۰۰/۲)

ف:په دوربين (لرليد)سره سپوږمۍ ته په کتلوکي هيڅ حرج نشته ځکه چي دروبين دعينکوپه شان صرف نظرلوبه وي هوکه چيرته داسي دوربين جوړشي په کوم سره چي سپوږمۍ له افق څخه دشاتي والي باوجودښکاره شي نوددي رؤيت اعتبارنشته ،همداشان په طياره سره سپوږمۍ ته په کتلوکي څه حرج نشته په دي شرط چي هغه په دومره ارتفاع کي پرواز ونه کړي ترکومه ځايه چي دځمکي والونظرنشي رسيدلی ولی چي شرعاًهغه رويت معتبردی چي په ځمکه اوسيدونکي دفضاء دصاف والی په صورت کي

پخپلو سترګو سره وليداى شي لهذا په ډيره ارتفاع کې د پروازپه صورت کې سپوږمۍ ليدل دهغه ښار لپاره معتبرنه دي د کوم په فضاء چې پرواز شوى دى .

ف: دريډيو خبرديو اعلان حيثيت لري دا اعلان که درويت هلال دباضابطه کميټۍ له طرفه وو کومه چې دسپوږمۍ دليدلو باقاعده شهادت اخلې اوبيا فيصله کوي ،يادکوم داسې شخص له طرفه وي کوم چې دهغه ځاى مسلمانانو دقاضي يا امير شريعت په حيثيت سره منلى وي اوهغه باضابطه شهادت اخلې اوبيا فيصله کوي او اعلان کونکى پخپله قاضي يا امير شريعت يادرويت هلال کميټۍ مشريادکميټۍ معتمدمسلم نمائنده وي نومقامې کميټۍ ياقاضي يا اميرله جائزدى چې هغه پرهغه باندي اعتماد وکړي اودرويت فيصله وکړي .(فتاوى رحيميه :۷/۲۱۸)

ف: په هغه ځايونو کې چې دهغوتعلق له خبراواطلاع سره وي دټيليفون هم اعتبارشته،ليکن په کوم ځاى کې چې شهادت اوګواه مطلوب وي په هغه ځاى کې محض فون کفايت نه کوي مخامخ حاضري ضروري ده په داسې مواقعو کې په دي تدبيرعمل کول په کاردي چې ددارالقضاء يارؤيت هلال کميټۍ له طرفه دي په مختلفو اهمو مقاماتو باندي داسې ذمه داران متعين کړي کوم چې درويت هلال ګواهى واخلې اوبيا دټيلفون په ذريعه مرکزته اطلاع ورکړي ،(مسائل رفعت قاسمى:۴/۱۵)،حضرت تهانوى رحمه الله فرمايي :په کومواحکامو کې چې حجاب له قبول څخه مانع دى په هغوکې (دټيلفون خبر)غيرمعتبردى ، اوپه کوموکې چې حجاب مانع نه دى په هغوکې که په قرائينوقويه سره دمتکلم تعيين معلوم شي نو معتبردى.(امدادالفتاوى:۲/۹۵)

ف: په ملک کې موجوده هلال کميټۍ اعلان که څه هم داعتبارقابل دى پرهغه مسلمان داخترا ورمضان په شان امورسرته رسولى شي مګرله دى علاوه دعلماو کميټۍ يايو معتمدعالم دين هم ددي خبري مجازدى چې هغه دشهادت يانورو اطلاعاتوپه بناء درمضان اوعيدينو فيصله وکړي داهم دقاضي قائم مقام دى .(حقانية :۴/۱۳۶)

(۵)که درمضان مياشت مشتبه شوه دانه شوه معلومه چې دشعبان ديرشم تاريخ دى يادرمضان اول تاريخ دى نودي ورځې ته يوم شک ويل کيږي په دي کې دي له نفلو څخه ماسوا بله روژه نه نيسې ځکه چې په حديث کې ددي ممانعت وارد شوى دى ،که يې په دي نيت سره روژه ونيوله چې رويت وشونو درمضان روژه به وي که نه نو نفل به وي نوداتردد له وجه مکروه ده ،هو که په يقيني ډول سره دنفلو نيت وو نو مضائقه نشته ،مګردااهل علم کاردى چې هغه دخپل علم په بناپه شکوکو اووساوسو کې نه مبتلا کيږي بلکه خالص دنفلوپه نيت سره روژه نيسې البته عوام څرنګه چې ددي وساوسوپه لري کولو قدرت نه لري په دي وجه هغوئ ته په دورځ دروژي دنيولو اجازه نشته ،بيا که اتفاقا درويت تحقق وشونودانفل روژه دفرضو قائم مقامه کرځي .

(۶)وَمَنْ رَأَى هِلَالَ رَمَضَانَ أَوْ الْفِطْرِ وَرُدَّ قَوْلُهُ صَامَ (۷)فَإِنْ أَفْطَرَ قَضَى فَقَطْ (۸)وَقُبِلَ بِعِلَّةٍ خَبَرُ عَدْلٍ وَلَوْ قِنًّا أَوْ أُنْثَى لِرَمَضَانَ (۹)وَحُرَّيْنِ أَوْ حُرٍّ وَحُرَّتَيْنِ لِلْفِطْرِ

**ترجمه**، او كه چاميا شت وليدله د رمضان يا عيد و الا او رد شو د ده قول نو هغه دي روژه ونيسي ، نو كه ده افطار وكړ نو صرف قضاء دي راوړي ، او قبليږي به د علت په وخه سره د يوه عادل شخص خبر كه څه هم هغه غلام يا ښځه وي د رمضان لپاره ، او د دوو ازادو نارينه وو يا يوه ازاد نارينه او د دوو ازادو ښځو د اختر لپاره .

**تشريح**، (۶) يعنى كه يو چا تنها د رمضان يا اختر مياشت وليدله او مطلع صاف وو نو دا شخص دي خپله روژه ونيسي كه څه هم امام د ده گواهى په يوه وجه سره رد كړه ﴿ لقوله ﷺ صوموا لرؤيته وأفطروا لرؤيته ﴾ (يعنى د مياشتې په ليدلو سره روژه ونيسئ او د مياشتې په ليدلو سره افطار وكړئ ) او د ده په حق كې څرنگه چې رويت هلال ثابت دى لهذا پر ده روژه واجب شوه . د عيد الفطر په صورت كې دي په دي وجه روژه ونيسي چې د نبى كريم ﷺ ارشاد دى الصوم يوم يصومون والفطر يوم يفطرون (روژه هغه ورځ ده چې په كومه ورځ چې خلك روژه ونيسي او افطار په هغه ورځ ده په كومه ورځ چې خلك افطار وكړي) همدا راز په دي كې احتياط هم دى .

(۷) البته كه ده دا روژه وخوړه نو صرف قضاء لازمه ده كفاره نشته ځكه چې قاضي د ده شهادت د دليل شرعى يعنى تهمت يا غلطۍ له وجه رد كړى ده د كوم په وجه چې د ده په روژه كې شبه پيدا شوه او كفاره د شبهې له وجه ساقطيږي .

(۸) يعنى كه مطلع صاف نه وو بلكه په اسمان وريځ يا گرد و غيره وو نو د رمضان المبارك د مياشتې د ليدلو په باره كې د يوه عادل (د كوم چې نيكيانې د ده پر گناهونو ډيرې وي ) شخص گواهى قبليږي كه څه هم غلام يا ښځه وي ، ولى چې له حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چې ﴿ جاء أعرابي إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال إني رأيت الهلال فقال أتشهد أن لا إله إلا الله قال نعم قال أتشهد أن محمدا رسول الله قال نعم قال يا بلال أذن في الناس فليصوموا غدا ﴾ (يعنى يو اعرابى د نبى كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شو او عرض يې وكړ چې ما د رمضان مياشت وليدله نبى كريم ﷺ پوښتنه وكړه چې ته گواهى وركوې چې له يوه الله جل جلاله څخه ما سوا د عبادت لائق نشته هغه وويل هو . نبى كريم ﷺ پوښتنه وكړه نو ته گواهى وركوې چې محمد ﷺ د الله تعالى رسول دى هغه وويل هو . نبى كريم ﷺ وفرمايل يا بلال ! په خلكو كې اعلان وكړه چې سبا روژه ونيسئ ) ، همدا راز څرنگه چې دا يوه ديني معامله ده نو دا د روايت اخبار سره مشابه ده همدا وجه ده چې په دي كې د شهادت لفظ ضروري نه دى نو په دي كې عدد ، ازادى او مذكر والى شرط نه دى هو عدالت شرط دى ځكه چې د فاسق قول په ديانانو كې غير مقبول دى .

(۹) قوله وحرين او حر وحرتين للفطر اى قبل خبر حرين او حر وحرتين لاجل هلال الفطر ، يعنى د عيد الفطر د مياشتې د ليدلو لپاره (په دي شرط چې مطلع صاف نه وي ) د دوو ازادو نارينه وو يا د يوه ازاد نارينه او د دوو ازادو ښځو گواهى ضروري ده ولى چې له دى سره د بندگانو حق (يعنى روژه ماتول ) متعلق دى نو د گواه لپاره چې كوم شرائط په نورو حقوقو كې ضروري دي هغه په دي كې هم ضروري دي يعنى د گواه عدالت ، ازادي ، تعدد او په لفظ د شهادت سره گواهى وركول .

(۱۰) وإلا فجمع عظيم لهما (۱۱) والأضحى كالفطر (۱۲) ولا عبرة باختلاف المطالع

**ترجمه**، كه نه نو د يوه غټ جماعت خبر معتبر دى د دواړو لپاره ، او عيد الاضحى د عيد الفطر په شان دى . او اعتبار نشته د اختلاف د مطالعو .

**تشريح** :(۱۰)قوله والاالجمع عظيم اى وان لم يكن بالسماء علة فجمع عظيم ،یعنی که مطلع صاف نه وو پراسمان وریځ، گرد وغیره نه وو نودرمضان اوعیددواړولپاره دیوه دوو گواهی معتبره نه ده بلکه ددومره لوی جماعت گواهی به قبلیږي دکوموپه خبرسره چې دمیاشت دلیدلوظن غالب حاصل شې ځکه چې مطلع صاف ده اوسترگې سالمې دي بیاهم دیوه یادووپه لیدلوسره دظاهریږي چې دوئ دمیاشتې په لیدلوکې غلط شوي دي.

ف:یاته شوه داچې دلوی جماعت مقدارڅومره دی نویوقول دادی چې دادقاضی رأیې ته مفوض دی چې هغه کوم جماعت لوی وگڼي نوهغه جماعت لوی دی ،اویوقول دادی چې کله له هرطرفه دروٴیت خبرراشي نودابه لوی جماعت گڼل کیږي،له امام ابویوسف ﷫ څخه مروی ده چې پنځوس کسان که خبرورکړي نودالوی جماعت دی ،قول اول راجح دی كمافى الشامية :وفى السراج لم يقدر لهذاالجمع تقدير فى ظاهر الرواية والصحيح من هذا كله انه مفوض الى رأى الامام ان وقع فى قلبه صحة ماشهدوابه وكثرت الشهودامر بالصوم وكذاصححه فى المواهب وتبعه الشرنبلالى وفى البحر عن الفتح والحق ماروى عن محمدوابى يوسف ايضاان بمجئ الخبر وتواتره من كل جانب وفى النهر انه موافق لماصححه فى السراج .(ردالمحتار:۲/۱۰۱)

(۱۱)اودعیدالاضحی دمیاشتې دلیدلوهغه حکم دی کوم چې دعیدالفطردمیاشتې دی یعنی دمطلع دنه صاف والی په صورت کې ددوو ازادونارینه ویادیوازادنارینه اودووازادوښځوگواهی ضروري ده اوکه مطلع صافه وي نودیوه لوی جماعت گواهی ضروري ده کمامر.

(۱۲)داختلاف مطالع اعتبارنشته یعنی که دیوه ښارخلکومیاشت ولیدله نوظاهرروایت دادی چې دالیدل په نورښارونو باندې هم مطلقالازمیږي خواه که ددې ښارونوترمنځ فاصله وي اوکه نه وي اوپرهمدې فتوی هم ده اوبعضوعلماوقول دادی چې اختلاف مطالع معتبرنه دی ددې قول مطابق په هرښاراوهرملک دهغه دمطلع حکم معتبردی.

ف:داختلاف مطالع په باره کې دمجلس تحقیقات شرعیه ندوة العلماء لکنهو فیصله ملاحظه کړئ کومه چې په سنه ۱۹۶۷ء کې په یومجلس کې فرمایلې ده ،لیکې :(۱)په نفس الامرکې دټولې دنیامطلع یونه دی بلکه اختلاف مطالع مسلم دی اودایوواقعي شی دی په دې کې دفقهاء کراموهیڅ اختلاف نشته اوحدیث شریف هم ددې تائیدکوي كذافى الشامية ،۲/۱۰۵.(۲) البته فقهاء کرام په دې خبره کې مختلف دي چې دروژې اوافطارپه باب کې دااختلاف مطالع معتبردی اوکنه ؟دمحققن احناف اودعلماء امت دتصریحاتو اودلائلوپه رڼائې دمجلس متفقه رأیه داده چې په بلادبعیده کې په دې باب کې هم اختلاف مطالع معتبردی كذافى العرف الشذى،۱/۲۶۶.(۳)له بلادبعیده څخه مراددادی چې ددوئ ترمنځ دومره اندازه لري والی واقع وي چې عادة ددوئ په رویت کې دیوې ورځې فرق راځي،په یوه ښارکې یوه ورځ وړاندې میاشت ښکاریږي،اوپه بل کې یوه ورځ وروسته ،په دې بلادبعیده کې که دیوه ښاررویت دبل ښارلپاره لازم کړای شې نومیاشت به یوځای داته ویشتوورځووي اوبل ځای به ددیرشوورځووي، دحضرت عبدالله بن عباس ﷠ له روایت څخه ددې قول تائیدکیږي .(۴)بلادقریبه هغه ښارونه دي دکوموپه رویت کې چې عادتادیوې ورځې فرق نه راځي،فقهاء دیوې میاشتې په اندازه لیري والی ته کوم چې تقریباپنځه یاشپږسوه

ميله کيږي بلادبعيده وايي ،اوله دي څخه لږته بلادقريبه ،مجلس په دي سلسله کې ديوداسي جدول ضرورت محسوسوي چې له هغه څخه معلومه شي چې مطلع په څومره مسافت سره بدليږي اودکوموکوموښارونومطلع يودى كذافى الشامية :۲/۱۰۵). (۵)دهندوستان، اوپاکستان دډيروبرخو اوځينوقريبي ملکونومثلانيپال وغيره مطلع يودى،دعلماء هنداوپاکستان عمل هيمشه پرهمدي ده، اوغالباله تجربي څخه هم همداثابته ده ددي ملکونودښارونوترمنځ دومره اندازه بعدمسافت نشته چې په مياشته کې دي ديوې ورځي فرق راشي په دي بنيادسره په دي دواړو ملکونوکې چې چيرته هم مياشت وليدل شي له شرعي ثبوت څخه وروسته دهغه منل ددي دواړوملکونو پرټول اهل ښارباندي لازم ده .(۶)دمصراوحجازپه شان دلري ملکونومطلع دهندوپاک له مطلع څخه عليحده ده ددي ځاى رويت دهغوملکونولپاره اودهغوملکونو رويت ددي ځاى لپاره په هرحال کې لازم اوقابل قبول نه دى په دي وجه په دوئ کې اوپه هندوپاک کې دومره اندازه ليري والى ده چې عموماديوې ورځي فرق راځي اوځيني وختونه له دي څخه هم زيات .(جديد فقهى مسائل:۲/۳۴)

ف:يوکس په سعودى کې دقاضى په قضاءسره روژه ونيوله بياپاکستان ته راغى ده هلته په سعودى کې ديرش روژي پوره کړي حال داچې په پاکستان کې داخترحکم نه دشوى نوداکس به پاکستان ته په رارسيدلوسره ددي ځاى اعتبارکوي اويوديرش روژي به نيسي اوپه همدي کې احتياط دى. (فتاوى عثمانى:۲/۱۷۶)

ف:يوکس په پاکستان کې روژي ونيولي بياسعودى عرب ته ولاړى دده دوه روژي دسعودى په لحاظ سره کميږي په داسي صورت کې پردي شخص ددي دوروژوقضاء لازمه ده .(فتاوى عثمانى:۲/۱۷۷)

ف:په ظاهرالرواية کې چې داختلاف مطالع اعتبارنه دکړل شوى دافقط دروژي په باره کې دى باقي دلمانځه په وختونو ،اضحيه اوحج کې دهرقوم خپله مطلع معتبره ده حتى که دکوم قوم دعيدالاضحى ديارلسمه ورځ وه اوديوبل قوم په ځاى کې دولسمه ورځ وه نوددي قوم په دي ورځ اضحيه کول صحيح دي كمافى الشامية(تنبيه)يفهم من كلامهم فى كتاب الحج ان اختلاف المطالع فيه معتبر فلايلزمهم شئ لو ظهر انه رؤى فى بلدة اخرى قبلهم بيوم وهل يقال كذالک فى حق الاضحية لغير الحجاج لم اره والظاهر نعم لان اختلاف المطالع انمالم يعتبر فى الصوم لتعلقه بمطلق الرؤية وهذا بخلاف الاضحية فالظاهر انها كاوقات الصلوة يلزم كل قوم العمل بماعندهم فتجزى الاضحية فى الثالث وان كان على رويا غيرهم هو الرابع عشر والله اعلم،قال ابن الشيخ :قوله الثالث عشر صوابه الثانى عشر وقوله هو الرابع عشر صوابه الثالث عشر من ذى الحجة هو اليوم الرابع من عيد الضحى والاضحية فى ذالک اليوم لاتصح عندنا ولعل جناب سيدى الوالد المؤلف اراد ان يكتب فى اليوم الثالث فسهافامسه فكتب الثالث عشر (ردالمحتار:۲/۱۰۵)،وفى العرف الشذى:۱/۲۶۶ :واما فى فطر كل يوم والصلوة الخمسة فيعتبر اختلاف المطالع.

## بَابُ مَا يُفْسِدُ الصَّوْمَ وَمَا لَا يُفْسِدُهُ

داباب دهغوشيانوپه بيان کې دى کوم چې روژه فاسدوي اوکوم چې روژه نه فاسدوي

كله چې مصنف ﷫ د روژې له انواعو او اقسامو څخه فارغ شو نو د هغو عوارضو په بيان کې شروع وکړه کوم چې پر روژې طاري کيږي يعنی په کومو صورتونو کې روژه فاسديږي او په کومو کې نه فاسديږي او د فساد په کومو صورتونو کې صرف قضا واجبيږي او په کومو کې قضاء او کفاره دواړه واجبيږي.

ف: د شي د فساد معنی داده چې هغه معنی مطلوبې ته له مفيد کيدلو څخه وايستل شي، په عباداتو کې د فساد او بطلان ترمنځ د تساوی نسبت دی البته په معاملاتو کې د دواړو ترمنځ فرق شته چې بيع فاسده مفيد ملک ده مگر بيع باطله مفيد ملک نه ده.

(۱۳) فَإِنْ أَكَلَ الصَّائِمُ أَوْ شَرِبَ أَوْ جَامَعَ نَاسِيًا (۱۴) أَوِ احْتَلَمَ (۱۵) أَوْ أَنْزَلَ بِنَظَرٍ (۱۶) أَوِ ادَّهَنَ أَوِ احْتَجَمَ أَوِ اكْتَحَلَ (۱۷) أَوْ قَبَّلَ (۱۸) بِخِلَافِ الْإِنْزَالِ (۱۹) أَوْ دَخَلَ حَلْقَهُ غُبَارٌ أَوْ ذُبَابٌ وَهُوَ ذَاكِرٌ لِصَوْمِهِ (۲۰) أَوْ أَكَلَ مَا بَيْنَ أَسْنَانِهِ (۲۱) أَوْ قَاءَ وَعَادَ لَمْ يُفْطِرْ (۲۲) فَإِنْ أَعَادَهُ (۲۳) أَوِ اسْتَقَاءَ أَوِ ابْتَلَعَ حَصَاةً أَوْ حَدِيدًا قَضَى فَقَطْ

**ترجمه**: كه روژه لرونكی خوړک وکړي يايې څښاک وکړي يايې جماع وکړه په هيره سره، يا احتلام شو، يايې انزال وشو په کتلو سره، ياتيل ولګول يا ښکرولګوی يايې رانجه ولګول، يايې مچه واخيسته، په خلاف د انزال چې د مچې له وجه وشي، يا داخل شو دده حلق ته ګرد يا مچ په داسې حال کې چې دده روژه په ياد وي، يايې وخوړی هغه شی کوم چې دده په غاښونو کې بند وو، ياقی وکړ او هغه تير شو نو روژه نه ماتيږي، او که د خپله تير کړ، يايې قصداً قی وکړ يايې تيره کړه کوچنی ډبره يا اوسپنه نو صرف قضا به راوړي.

**تشريح**: د مصنف ﷫ قول، فان اكل الخ شرط دی او لم يفطر يې جزاء ده نو په شرط کې د ټولو ذکر شويو مسائلو ځواب لم يفطر دی.

(۱۳) كه روژه دار په هيره سره خوړک وکړي يايې څښاک وکړي يايې جماع وکړه نو استحساناً دده روژه نه ماتيږي د قياس تقاضا داده چې ماته شي ولی چې خوړک وغيره د روژې ضد دي او د شي ضد شی معدوم ګرځوي ولی چې په يوه وخت کې د ضدينو موجود ديدل محال دي، د استحسان وجه داده چې دا کس حکماً له مفطراتو څخه ځان ساتلی دی ځکه چې يو کس روژې په حالت کې په هيره سره څه خوړک څښاک وکړنو ده ته نبی کريم ﷺ وفرمايل ته خپله روژه پوره کړه په دې وجه چې الله تعالی تاته خوړک او څښک درکړ، نو د فعل اکل او شرب نسبت نبی کريم ﷺ د الله تعالی طرف ته وکړ چې الله تعالی تاته خوړک او څښک درکړ ګويا بنده خوړک څښک نه ده کړی لهذا دده روژه نه ماتيږي، نو کله چې له روايت څخه دا ثابته شوه چې په هيره سره خوړک څښک مفسد صوم نه دی نو له دې څخه دلالة دا هم ثابته شوه چې په هيره سره جماع کول هم مفسد صوم نه ده.

ف: نسيان داده چې د ضرورت په وخت کې د کوم شي استحضار نه وي، نسيان په حقوق العبادکې عذر نه شمارل کيږي البته په حقوق الله کې د سقوط اثم تر حده عذر شمارل کيږي، خطاء داده چې ياد خو يې وي مگر د فعل صدور له ده څخه بالقصد نه وي مثلاً د صائم روژه ياده وي مگر د خولې د پريمنځلو په وخت کې بې اختياره او به دده نس ته تيري شي، په خطاء څه خوړلو څښلو سره روژه ماتيږي او پرده قضاء لازمه ده.

ف:كه مكره يا ويده كس څه خوړل يا يې وڅښل نودى دمخطي په حكم كې دى كذافي الهداية: ۱/۱۹۹) وفي فتح القدير: واعلم ان اباحنيفة كان يقول اولا في المكره على الجماع عليه القضاء والكفارة لانه لا يكون الا بانتشار الآلة وذالك امارة الاختيار ثم رجع وقال لا كفارة عليه وهو قولهما لان فساد الصوم يتحقق بالايلاج وهو مكره فيه مع انه ليس كل من انتشر آلته يجامع (فتح القدير: ۲/۲۵۵)

(۱۴) كه روژه دار ويده شو او په دې حال كې دده احتلام وشونو دده روژه نه فاسديږي ﴿لقوله ﷺ ثلاث لايفطرن الصائم القئ والحجامة والاحتلام﴾ (درې شيان روژه نه ماتوي ،قى كول ،ښكرلګول ،او احتلام كيدل)،همدارازپه احتلام كې نه صورة جماع شته اونه معنى اوكله چې نه صورة جماع ده اونه معنى نوپه دې سره روژه هم نه ماتيږي ،صورة جماع داده چې ديوه شرمګاه دبل په شرمګاه كې داخله شي ،اومعنى جماع داده چې ښځه اونرسره يوځاي شي اوبغيرله ادخاله انزال وشي.

(۱۵) همداشان كه يوچا ښځې ته وكتل اوانزال يې وشونوهم روژه نه فاسديږي ځكه چې په دې وخت كې هم نه صورة جماع شته اونه معنى ،خواه كه يوځل وي يا په بل ځل كتلوسره انزال وشي ،دامام مالك رحمه الله په نزدپه دوهم ځلو كتلوسره دانزال كيدونكې روژه ماتيږي ولې چې دوهم ځل كتل فعل ممنوع دي ،امام مالك رحمه الله ته ځواب وركړل شوي دي چې دروژې دمفطراتوپه باره كې قاعده داده چې كوم شيان چې مفطردي په هغوكې تكرارشرط نه دى اوكوم چې مفطرنه دي په هغوكې تكرارهم مفطرنه دى كمالايخفى.

(۱۶) كه روژه دارتيل ولګول يا يې ښكرولګوى اويا يې رانجه ولګول نوپه دې درې صورتونو كې دده روژه نه فاسديږي ځكه چې په دې صورتونو كې منافى صوم نه صورة موجودشوى دى نه معنى، ولې چې تيل اورانجه براه راست دماغ اونس ته نه رسيږي دمساماتوپه ذريعه سره داخليږي اودمساماتو په ذريعه سره داخل شوى شى له روژې سره منافى نه دى، همدارازله حضرت عائشه رضي الله عنها څخه روايت دى چې نبى كريم ﷺ دصوم په حالت كې ارنجه ولګول (سترګې يې توري كړي)،اودښكرلګولوپه باره كې دنبى كريم ﷺ ارشادمخكې تيرشو چې مفسدصوم نه دى.

ف:انجكشن (پچكارى) مفسدصوم نه ده كه په غوښه كې ولګول شي اوكه په رګ كې ،ځكه چې دانجكشن (پچكارى) په ذريعه سره چې كوم شى جسم ته داخليږي هغه عموما دركونوپه واسطه سره دماغ يامعدې ته رسيږي كوم چې دغذااودواء معدې اودماغ ته درسولومنفذيعنى حقيقى لاره نه ده حال داچې مفسدصوم هغه شى ده كوم چې دمنفذمعتادپه ذريعه سره دماغ يامعدې ته ورسيږي .(كذافي امدادالفتاوى: ۲/۱۴۵)

(۱۷) همداشان كه روژه دارله يوچاڅخه مچه واخيسته اوانزال يې ونه شونودده روژه نه فاسديږي ﴿لماروى ابوسعيد الخدرى رضي الله عنه انه ﷺ رخص في القبلة للصائم﴾ (يعنى نبى كريم ﷺ دروژه دارلره دمچې اخيستلواجازه وركړي ده) همدارازپه دې وجه هم روژه نه ماتيږي چې منافى صوم نه صورة موجودشوى دى نه معنى.

(۱۸) قوله بخلاف الانزال به اى بخلاف مالوانزل بقبلة فانه يفسد فعليه القضاء ،يعنى كه روژه دارله ښځې څخه مچه واخيستله يا يې مس كړه اوانزال شونودده روژه فاسديږي ځكه چې منافى صوم يعنى معنى جماع متحققه شوه په دې وجه چې نراوښځه په شهوت سره يوځاى شول اوانزال وشوځكه نودده روژه فاسده شوه لهذاپرده

ددي روژي قضاء واجبه ده ليكن كفاره واجبه نه ده ولى چې كفاره له كامل جنايت څخه وروسته واجبېږي دلته دصورة جماع دنيستې له امله جنايت كامل نه دی.

(۱۹)كه دروژه دار حلق ته گرد داخل شو يامچ داخل شوا وحال دا چې ده ته خپله روژه ورياده وه نودده روژه نه فاسديږي ځكه چې له دي شيانو څخه دساتنې استطاعت نشته ،قوله وهوذاكر ،جمله حاليه ده په دي كې اشاره ده چې دده روژه نه وه په يادنو په طريقه اولى سره روژه نه فاسديږي .

**ف**:په رمضان شريف كې داگربتى وغيره په دوگ سره روژه ماتيږي كه يا؟ددي حكم بعينه دحضرت مولانا ظفراحمد عثمانى رحمه الله په الفاظو كې ملاحظه كړئ ،**سوال** :دروژي په حالت كې دقران مجيد دويلو په وخت كې كه نژدې عوديا اگربتى ولگول شي اودهغه دود حلق ته داخل شي نوروژه فاسديږي اوكه يا؟

**الجواب** :په دي صورت كې روژه فاسده نه ده ،هوكه يې اگربتى نژدي ونيوله اودهغې دوديې بوى كړاوپه حلق كې داخل كړنوروژه فاسديږي ،قال فى الدر(ص ۱۰۶ ج۲):اودخل حلقه غباراوذباب اودخان ولوذاكرا استحسانا لعدم امكان التحرزعنه ومفاده انه لوادخل حلقه الدخان افطراى دخان اكان اوعودااوعنبرا،قا ل الشامى حتى لوتبخر ببخور فاواه الى نفسه واشمه ذاكرالصومه افطراه قلت قيود الفقه احترازية فلوتبخر ولم يؤوه الى نفسه ولم يشمه لم يفطر فان ذالك من دخول الدخان لامن ادخاله والله اعلم (امدادالاحكام:۲/۱۳۵)

**ف**:ددمه سخت مريض ته ددوري پيښيدلو په صورت كې اكسيجن وركوى ،له اكسيجن سره كه كومه بله دواء نه وه نوبايدروژه نه شي ماته ځكه چې داساه اخيستل دي اودساه په ذريعه سره دهوا اخيستل نه مفسدصوم دى اونه پردي داكل اوشرب اطلاق كيږي ،كه له دي سره ددواء اجزاء هم وي نوبيا روژه ماتيږي .(جديد فقهى مسائل:۱/۱۹۰)

(۲۰)كه دروژه دار په غاښونوكې بنده شوي غذاروژه داروخوړله نوكه هغه لږوي نودده روژه نه فاسديږي ځكه چې عادة دغاښونوترمنځ څه ناڅه غذاء پاته كيږي له كوم څخه چې احترازممكن نه دى نوداشان غذاء دغاښونودمتابعت له وجه دلعاب په حكم كې ده اوكه كثيروي نوروژه فاسديږي ځكه چې له كثيرڅخه ځان ساتل ممكن دي ،البته كه يې قليل مقدارله خولې څخه رواېستى اوبيايې بيرته وخوړې نوروژه فاسديږي .

**ف**:په قليل اوكثيركې حدفاصل دادى چې دنخودپه مقداركثيردى اوله دي څخه كم قليل دى دعلامه دبوسى رحمه الله رأيه داده چې كثيرهغه دى چې دهغه تيرول بغيرله نارو څخه ممكن نه وي ،كمافى نهر الفائق:(اواكل مابين اسنانه)اذاكان اقل من قدر الحمصة كماقيده فى النقاية وان كان قدرها افطر لانه كثير كذااختار الشهيد قال الدبوسى هذا التقرير والتحقيق ان الكثير مايحتاج فى ابتلاعه الى استعانة بالريق واستحسنه فى فتح القدير .(النهر الفائق:۲/۱۸)

(۲۱)قوله اوقاء وعاداى لايفسد صومه لوقاء وعادالقى ،يعني كه روژه دارقى وكړاوهغه پخپله دحلق طرف ته تيرشونوروژه نه فاسديږي خواه كه قليل وي اوكه كثير ﴿ لقوله ﷺ من زرعه القى وهو صائم فليس عليه قضاء ﴾ (يعنى چاته خپله قى ورغى اوهغه صائم وو نوپرده قضاء نشته ).

(۲۲)قوله وان اعاده اى لوقاء واعاده عمدالقى فقط،يعنى كه ده قى وكړاوقصدايې تيركړنوبيا روژه فاسديږي په دي وجه دافطار صورت موجودشوځكه چې يوشى يې نس ته ورساوو،اوكه چاعمداقى

وکړنو دده روژه ماتیږي لهذا پرده قضاء واجب ده ﴿ لقوله ﷺ ......وَمَنِ اسْتَقَاءَ عَمْدًا فَلْيَقْضِ ﴾ (یعنی که چاعمداقی وکړنو پرده قضاء واجبه ده).

ف: دقی تقریباً څلورویښت صورتونه جوړیږي، په دي کې صرف دوه صورتونه مفسدصوم دي، یوداچې په ډکه خوله سره قی وکړي اودنخودپه اندازه یاله دي څخه زیات تیرکړي نوروژه ماتیږي قضاء لازمه ده کفاره نشته، دوهم صورت دادی چې قصداپه ډکه خوله سره قی وکړي، په دي صورت کې مطلقاروژه ماتیږي خواه کې یې تیرکړاوکه یې تیرنه کړ، البته که په ډکه خوله سره قی نه وو نومفسدنه دی.

(۲۳)که روژه دارډبره یااورسپینه تیره کړه نوپرده صرف قضاء واجب ده کفاره واجب نه ده قضاء ځکه واجب ده چې دافطار صورت موجودشو ځکه چې یوشی یې نس ته تیرکړاوکفاره په دي وجه نشته چې معنی أفطارنشته ځکه چې معنی افطار دیونفع رسونکی شی (له کوم څخه چې دواء یاغذاء حاصلیږي) نس ته رسول دي ډبره وغیره داسې نه ده، همداراز دقی په صورت کې هم څرنګه چې معنی انطارنشته نوکفاره واجب نه ده.

ف: که کوم کس غیرمفسدصوم مفسدصوم وګڼي (مثلاقی یې وکړاوهغه یې مفسدصوم وګڼی) اوله هغه وروسته یې خورک څښک وکړنوپرده کفاره نشته صرف قضاء لازمه ده. (احسن الفتاوی: ۴/۴۴۳)

**الالغاز**: ای صائم افطر ولاقضاء علیه؟

**فقل**: من شرع فیه مظنونا، کمن شرع بنیة القضاء فتبین ان لاقضاء علیه. (الاشباه والنظائر)

(م م) وَمَنْ جَامَعَ أَوْ جُومِعَ (۲۵) أَوْ أَكَلَ أَوْ شَرِبَ عَمْدًا غِذَاءً أَوْ دَوَاءً قَضَى وَكَفَّرَ (۲۶) كَكَفَّارَةِ الظِّهَارِ (۲۷) وَلَا كَفَّارَةَ بِالْإِنْزَالِ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ (۲۸) وَبِإِفْسَادِ صَوْمِ غَيْرِ رَمَضَانَ

**ترجمه**: اوکه چاجماع وکړه یاله ده سره جماع وشوه، یایې خورک یاڅښک وکړ دواء یاغذاء قصداً نوقضاء به راوړي اوکفاره به اداء کوي، دظهار دکفاري په شان، اوکفاره نشته په انزال سره له شرمګاه څخه ماسواپه بل ځای کې، اوپه فاسدکولوسره دغیررمضان دروژي.

**تشریح**: (۲۴) من جامع اوجومع، مبتداء دی، قضی وکفر، یې خبردی، یعنی که چاپه قصدسره له یو ژوندی انسان سره په احدالسبلین کې جماع وکړه خواه که انزال وشي یانه وي یاعمداله یوي ښځې سره صحبت وشي نوپه دي دواړو صورتونو کې ددي روژي قضاء هم لازمه ده اوپردي کس کفاره هم لازمه ده قضاء خوپه دي وجه لازمه ده چې داشخص ماموربالصوم دی حال داچې ده روژه ماته کړه لهذاپرده قضاء لازمه شوه اوکفاره په دي وجه چې دشهوة فرج دپوره کولوله وجه څخه جنایت کامل دی ځکه نوکفاره هم واجبه ده.

(۲۵) همداشان که یوچاقصداًکوم داسې شی وخوري یاویې وڅښي چې له هغه څخه غذاء حاصلیږي یاپه هغه سره تداوی کیږي نوپه دي صورتونو کې هم په هغه کس باندي قضاء هم شته اوکفاره هم، قضاء له دي وجهې چې منافی صوم موجودشواودشهوة بطن دپوره کولوله امله جنایت هم کامل دی له دي وجهې کفاره هم واجبه ده.

ف: دامام شافعی رحمه الله په نزدپه قصداخورک اوڅښاک سره کفاره نه لازمیږي ځکه چې کفاره خلاف القیاس په نص سره دجماع په صورت کې لازمیږي په کوم چې خوراک اوڅښاک قیاس کول صحیح نه دي، زموږدلیل

دنبی کریم ﷺ ارشاددی،﴿ من الطرفي رمضان فعليه ماعلى المظاهر ﴾ (يعنی چاکه په رمضان کې روژه ماته کړه نوپرده هغه دي کوم چې پرمظاهرباندي شته).

(۲۶)اودروژي کفاره دظهاردکفاري په شان ده ،دظهارکفاره داده چې ظهارکونکی به يوغلام يامينځه ازاده وي که ددي قدرت نه وي نودوه مياشتې به مسلسل روژي نيسي اوکه ددي قدرت هم نه ور نوبيادي شپيتومسکينانوته ډوډي ورکړي هرمسکين ته نصف صاع غنم يايوه صاع اوربشې ،اودروژي دماتولوکفاره دظهاردکفاري په شان ده له دي وجهې چې د نبی کریم ﷺ ارشاددی ﴿ من الطرفي رمضان فعليه ماعلى المظاهر﴾ (يعنی چاکه په رمضان کې روژه ماته کړه نوپرده هغه دي کوم چې پرمظاهرباندي شته).

ف:دمتعددوروژوپه کفاروکې تداخل شته اوکه يا؟په دي کې دري قوله دي راجح قول داده چې که چيرته مثلا ددوو رمضانوکفاري دجماع په سبب سره واجبوي نوبيابه دهريوه لپاره عليحده کفاره ورکوي اوکه دنوروسببونو له وجهې وي اودمخکنی روژي کفاره يې نه وي ورکړي نوپه دوئ کې تداخل جائزدی.(احسن الفتاوی:۴/۴۳۴)

(۲۷)که چادروژي په حالت کې له فرج ځخه په علاوه کې جماع وکړه مثلاپه ورنوکې ياپه نس کې يايې له کوم ځاروي سره جماع وکړه اوانزا ل شونوپرده قضاء شته ځکه چې معنی جماع موجوده شوه مګرپرده کفاره نشته ځکه چې صورة جماع نه دي متحققه شوي نودجنايت دنه کامل والی له کبله پرده کفاره نشته.

ف :دروژي په حالت کې په استمناء باليد(په اراده سره عضوتناسل ته حرکت ورکول اوله هغه ځخه ماده منويه خارج ول) سره روژه ماتيږي قضاء واجب ده ځکه چې په استمناء باليدکې معنی جماع شته ،مګرکفاره نه ده لازمه ځکه چې صورة جماع نه ده متحققه شوي .

ف:استمناء باليدممنوع اوحرامه ده نبی کریم ﷺ فرمايلي دي ﴿ ناکح اليدملعون﴾ (له لاس سره نکاح کونکی ملعون دی) نودقضاء شهوت په نيت سره داسې کول بلکل جائزنه دي ،هوکه دشهوت غلبه وه نوله زناځخه دساتل کيدلواوپه شهوت کې دسکون پيداکولولپاره که يې دافعل وکړنواميددی چې دی به ګناه ګارنه وي په دي شرط چې عادت يې جوړنه کړي كمالی شرح التنوير: وكذاالاستمناء بالكف وان كره تحريما لحديث ناكح اليدملعون ولوخاف الزنايرجى ان لاوبال عليه قال ابن عابدين الشامى رحمه الله ،وفي السراج.......قال ابو الليث ارجوان لاوبال عليه واما اذافعله لاستجلاب الشهوة فهو آثم بل لوتعين الخلاص من الزنابه وجب لانه اخف (الدرالمختارمع الشامية:۲/۱۰۹)

(۲۸)قوله وبالفسادصوم غيررمضان اى ولاكفارة ايضابافسادصوم غيررمضان ،يعنی که چادغيررمضان روژه ونيوله بيايې په قصدسره ماته کړه نوپرده کفاره واجب نه ده مثلانفلي يانذريادقضاء روژه يې ونيوله بيايې ماته کړه ځکه چې درمضان دي روژي په ماتولوسره کفاره خلاف قياس په نص سره ثابته ده لهذاپردي دنوروروژه ماتولوقياس نشي کيدای.

(۲۹)وَإن احْتَقَنَ أو استَعَطَ أو اقطَرَ في أُذُنِه (۳۰) أو دَاوىٰ جَائِفَةً أو آمَّةً بِدَوَاءٍ وَوَصَلَ إلَى جَوْفِه أو دِمَاغِهِ أفطَرَ (۳۱) وَإن أقطَرَ في إحْلِيلِه لا

**ترجمه**: او که چاحقنه وکړه یایې په پوزه کې دواء واچوله یایې په غوږونو کې دواء واچوله ،یایې داسې دواء ولګوله د نس پرزخم باندې یاد دماغ پرزخم باندې چې هغه ورسیدله دده نس یادماغ ته نو روژه ماتیږي ،او که یې دوا واچوله د ذکر په سوری کې نو نه ماتیږي .

**تشریح**:(۲۹)یعنی که چاحقنه وکړه یعنی دپاخانه په لاره کې دننه دواء واچوله اویایې په پوزه کې دواواچوله یایې په غوږکې (دتیلو)څاڅکي واچول نودده روژه ماتیږي ځکه چې په مذکوره بالا صورتونوکې دفطارمعنی موجوده شوه ځکه چې دافطارمعنی داده چې یوشې دبدن دنفع لپاره نس یادماغ ته رسول اوداشی په مذکوره بالاصورتونو کې متحقق شو .

**ف**: په غوږونو کې دتیلو څڅولو قیدله دې وجهې ولګول شوچې په غوږکې اوبه ننوتلې نودامفطرنه دي ، مګرجدیدتحقیق دادی چې په غوږکې په تیل څڅولوسره هم روژه نه ماتیږي ،په دې باره کې دمشهوري دیني درسګاه جامعه دارالعلوم کراچی دفتوی یوه حصه ملاحظه کړئ لیکي :اوس ځرنګه چې ټول اطباء اودتشریح الابدان ماهرین په دې خبره متفق دي چې په غوږکې په دواء اچولوسره تردماغ پوري دهغې درسیدلو هیڅ لاره نشته اوپه دې خبره هم متفق دي چې په غوږکې ددواء اچولوپه صورت کې ترحلق پوري دهغې درسیدلو هم په عامو حالاتو کې کومه لارنشته نوددې ترکوم جوف معتبر پوري رسیدل ثابت نه دی ،اومذاهب اربعه پردې هم متفق دي چې له منافذمعتبره څخه جوف معتبرپه رسیدلو سره روژه ماتیږي له دې څخه سره تردماغ پوري دهغې درسیدلو هیڅ لاره نشته اوپه دې خبره هم متفق دي چې په غوږکې ددواء اچولوپه صورت کې ترحلق پوري دهغې درسیدلو هم په عامو حالاتو کې کومه لارنشته نوددې ترکوم جوف معتبرپوري رسیدل ثابت نه دی ،اومذاهب اربعه پردې هم متفق دي چې له منافذمعتبره څخه جوف معتبرپه رسیدلو سره روژه ماتیږي له دې څخه بغیرنه .

ددې صورتحال په نظرکې لرلوسره مجلس تحقیق مسائل حاضره په لاندني امورو سره په خاص طورغوروکړ.(۱)دحضرت مولانامفتی محمدرفیع عثمانی صاحب دامت برکاتهم هغه تحقیق کوم چې حضرت موصوف مدظلهم په خپل کتاب، ضابط المفطرات کې په ص۵۸باندې لیکلی دی ،اودکوم له ظاهرڅخه چې دامعلومیږي چې په غوږکې په دواء اچولوسره روژه بایدفاسده نه شي .. (۲)دحضرت مولانامفتی رشیداحمدصاحب مدظلهم فتوی کومه چې په ۲۴جمادی الثانیة کال ۱۴۲۲هج کې لیکل شوي ده ،په دې فتوی کې هم په غوږکې دواء اچول مفسدصوم نه دی ګڼل شوی ،په دې ټولوامورو په غورکولوسره مجلس تحقیق مسائل حاضره ،دې نتیجې ته ورسیدی چې په غوږکې په اوبویاتیلو اچولو سره روژه نه فاسدیږي ،الاداچې که دیوکس دغوږپرده پرې وه اوهغه اوبه یاتیل وغیره دده حلق ته ورسیدل .

البته له دې سره که یوڅوک دقدیم جمهوروفقهاؤ ترول مطابق پخپله احتیاط وکړي اودروژې په حالت کې په غوږکې ددواء اچولو پرځای له افطارڅخه وروسته دواء تیل وغیره په غوږکې واچوي نودده لپاره داسې کول بلاشبه بنه اوله شبهې څخه ډیربعید دی.

ف: په روژه کې غاښې کښل یا پر هغه دواء لګول د ضرورت شدیده په وخت کې جائز دي او بلاضرورت مکروه دي که دواء یا وینه نس ته ورسیږي او پرنا رو غالبه وي یاله هغوئ سره برابره وي یا یې خوند محسوس شي نو روژه ماتیږي، په ستر ګه کې بهیدونکې دواء اچول مفسد صوم نه ده که څه هم په حلق کې د دواء اثر معلوم شي. (احسن الفتاوی ۴/۴۳۶)

(۳۰) که روژه دار په جائفه (دنس زخم کوم چې جوف ته رسیدلی وي) یا په آمه (د سر زخم کوم چې دماغ ته رسیدلی وي) کې لنده دواء واچوله او هغې سرایت وکړ نس یا دماغ ته ورسیدله نو د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد د ده روژه فاسدیږي ځکه چې ظاهره داده چې کله د دواء رطوبت د زخم له رطوبت سره یو ځای شي نو د دننه طرف ته د میلان په وجه سره دواء بالیقین جوف او دماغ ته دننه رسیږي او کله چې دواء جوف او دماغ ته ورسیدله نو روژه فاسدیږي، حال داچې د صاحبینو رحمهما الله تعالی په نزد روژه نه فاسدیږي ځکه چې د دواء دننه رسیدل یقیني نه دي بلکه شک دی او د شک په وجه سره روژه نه فاسدیږي.

ف: مفتی به قول د امام ابوحنیفه رحمه الله دی، لیکن د فساد په قول کې د لندې دوایې قید ضروري نه دی بلکه نس یا دماغ ته د دوایې رسیدل معتبر دي نو که ورسیده نو روژه ماتیږي که څه هم وچه دواء وي او که د لندې دوایې په باره کې معلومه شوه چې نس ته نه ده رسیدلې نو روژه نه فاسدیږي کمافی الشامیة: المعتبر حقیقة الوصول حتی لو علم وصول الیابس افسد او عدم وصول الطری لم یفسد وانما الخلاف اذا لم یعلم یقینا فافسد بالطری حکما بالوصول نظرا الی العادة (ردالمحتار: ۲/۱۱۲)

(۳۱) قوله وان اقطر فی احلیله لا ای ان اقطر فی احلیله لا یفطر، یعنی که کوم روژه دار د خپل ذکر په سوری کې دواء واچوله نو د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد د ده روژه نه فاسدیږي او د امام ابویوسف رحمه الله په نزد فاسدیږي، د اختلاف وجه داده چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد د ذکر او نس تر منځ مثانه حائله ده بولې له دې ځخه مترشح کیږي لهذا د ذکر له سوری څخه د دواء نس ته د رسیدلو لار نشته ځکه روژه نه ماتیږي حال داچې د امام ابویوسف رحمه الله په نزد لاره شته ځکه روژه ماتیږي.

ف: اصح داده چې د جوف او ذکر تر منځ منفذ نشته لهذا په صورت مذکوره کې روژه نه ماتیږي کمافی الشامیة: والاختلاف مبنی علی انه هل بین المثانة والجوف منفذ اولا وانا الاظهر انه لا منفذ له وانما یجتمع البول فیها بالترشیح کذا یقول الاطباء (ردالمحتار: ۲/۱۰۹)

ف: د مصنف رحمه الله قول، وان احتقن او استعط الخ، شرط دی او لفظ، افطر، یې جزاء ده نو په شرط کې د مذکورو تولو مسائلو لپاره ځواب افطر دی.

(۳۲) وَكُرِهَ ذَوْقُ شَيْءٍ (۳۳) وَمَضْغُهُ بِلَا عُذْرٍ (۳۴) وَمَضْغُ الْعِلْكِ (۳۵) لَا كُحْلٌ (۳۶) وَدَهْنُ شَارِبٍ (۳۷) وَسِوَاكٌ (۳۸) وَالْقُبْلَةُ إِنْ أَمِنَ

**ترجمه:** او مکروه ده د یو شي څکل، او ژول بغیر له عذر څخه، او د ژاولو ژول، نه رانجه لګول، او په بریتو نو تیل لګول، او مسواک وهل، او مچه اخیستل که د صحبت خوف نه وو.

**تشریح:** (۳۲) یعنی که چا په خوله سره کوم شی وڅکی نو د ده روژه نه ماتیږي ځکه چې مفطر شی نس ته نه دی رسیدلی البته دا عمل مکروه ده ځکه چې په دې کې تعریض الصوم علی الفساد دی په دې وجه چې قوت جاذبه قوي ده ممکنه ده چې هغه له دې ځخه یو څه د نس لور ته جذب کړي.

(۳۳)قوله ومضغه بلاعذر ای کره مضغ شئ بلاعذر،یعنی بلاعذره دیوشي ژول هم مفسدصوم نه دی البته مکروه دی لماقلنا، الظاهر ان الکراهة فی هذه الاشیاء تنزیهیة(ردالمحتار: ۲/۱۲۲)

ف:که دکومې ښځې خاوندبدمزاجه اوتریخ طبیعت والاوي اوښځه ته له ده څخه دړهلواوبدرد ویلوخطره وي نودداسې ښځې لپاره پاخه شوي شیان بلاکراهته جائزدي لماقال العلامة قاضی خان: اذاالزوج سیئ الخلق لاباس للمرأة ان یذوق المرقة بلسانه(فتاوی قاضی خان: ۱/۹۸)

(۳۴)قوله ومضغ العلک ای وکذایکره مضغ العلک ،یعنی ژوالې ژول هم مکروه دي ځکه چې خلک یې وینې نوواېې به چې څه خوري نودی به په روژه نه نیولوسره متهم کړي ،مګرمفسدصوم نه دی ځکه چې کوم شی نس ته نه رسیږي اوکله چې شی نس ته ونه رسیږي نوروژه هم نه فاسدیږي ،البته که له دي څخه څه نس ته رسیږي نوبیاددوئ مفسدصوم والی هم یقنی دی.

ف:له حالت صوم څخه ماسوادښځې لپاره ژاولي ژول مکروه نه دي ددوئ په حق کې دمسواک قائم مقام دي اودنارینه ولپاره دتشبه بالنساء له وجهې څخه بلاعذرمکروه دي کمافی شرح التنویر: وکره للمفطرین الالی الخلوة بعذروقیل یباح ویستحب للنساء لانه سواکهن ،قال ابن عابدین: (قوله کره للمفطرین)لان الدلیل عنی لتشبه بالنساء یقتضی الکراهة فی حقهم خالیاعن المعارض فتح وظاهره انهاتحریمیة الخ وفی کلام محمداشارةالی لایکره لغیرالصائم ولکن یستحب للرجال ترکه الالعذرمثل ان یکون لمه بخر(ردالمحتار: ۲/۱۲۲)

ف:دتمباکو،نسواروغیره استعمال مباح دی اوپه دي سره روژه هم فاسدیږي ځکه چې نسوارپه خوله کې ایښودل عملادخوراک په حکم کې دی.(فتاوی عثمانیة: ۲/۱۹۲)

(۳۵)قوله لاکحل ای لایکره کحل،کحل بفتح الکاف ،مصدردی درانجه لګولوپه معنی سره ،یعنی رانجه لګول مکروه نه دي ځکه چې له حضرت عائشې ﷺ څخه مروی ده چې نبی کریم ﷺ دروژې په حال کې رانجه ولګول ،(۳۶)قوله ودهن شارب ای لایکره دهن شارب ،یعنی په بریتونوتیل لګول هم مکروه نه دي ځکه چې په دي عمل کې دصوم منافی کوم شی نشته ،(۳۷)قوله والسواک ای لایکره استعمال السواک ، یعنی دروژې په حالت کې مسواک وهل مکروه ه دي بلکه سنت دی(کماهومصرح فی الشامیة)ځکه چې له حضرت عامربن ربیعه ﷺ څخه روایت دی فرمایې چې ما نبی کریم ﷺ دروژې په حالت کې په مسواک وهلوسره بې شمارځله لیدلی ده.

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزددروژه دارلپاره دماښام پروخت مسواک وهل مکروه دی ﴿لقوله ﷺ لخلوف فم الصائم عندالله اطیب من ریح المسک﴾ (یعنی دروژه داردخولې بوی دالله تعالی په نزددمشکوله خوشبوڅخه ډیرښه ده )حال داچې دماښام په وخت په مسواک وهلوسره ددي لري والی لازمیږي ،امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې په حدیث کې چې دکوم بوی ذکرراغلی دی هغه له معدې څخه دخالی له وجهې راوتونکی بوی ده اوهغه په مسواک سره نه ایري کیږي لهذا، ماښام پروخت هم مسواک مکروه نه دی.

ف:دروژې په حالت کې فقهاءاحناف دمسواک اجازه ورکړې ده خواه که دوچ لرګې څخه ري اوکه سرساووي په کوم کې چې یوقسم خوندموجودوي لیکن دټوت پیسټ(دغاښونوټوپ) یاټوت پاوډر (دغاښونوپوډر)حال له دي څخه مخالف دی په هغه کې خوندډیرمحسوسیږي اودمسواک خوپردوئ

اطلاق کیږي او نه د مسواک د سنت پوره کولو لپاره د دي ضرورت شته ،له دي وجهې له ضرورت شدیده څخه بغیر دروژې په حالت کې د دي استعمال له کراهت څخه خالي نه دی، هو د عذر په وجه سره یې استعمالولی شي .(جدید فقهی مسائل :۱/۱۹۰)

(۳۸)قوله والقبلة ان امن ای لایکره القبلة ایضا ان امن علی نفسه الجماع والانزال ،یعنې دروژې په حالت کې مچه اخیستل هم مکروه نه دي په دي شرط چې د صحبت کولو یا انزال کیدلو خوف نه وي او که دا خوف وونو مکروه دی ﴿لحدیث عائشة رضی الله عنها قالت کان رسول الله ﷺ یقبل وهو صائم ویباشر وهو صائم ولکنه کان املک لاربه﴾(یعنی نبی کریم ﷺ مچه اخیستله او مباشرت یې کاوو دروژې په حالت کې لیکن نبی کریم ﷺ په خپل ځان ډیر طاقت لارو)،همدارازمچه بذات خود مفطر نه ده هو کله دانجام په اعتبار سره مفطر ګرځي په دي ډول سره چې په مچه اخیستلو سره مشتعل شي او جماع وشي یا انزال وشي لهذا که د اطمینان صورت وو نو د عین مچې په اعتبار کولو سره مکروه نه ده او که د اطمینان صورت نه وو نو د انجام په اعتبار سره مکروه ده .

## فَصْلٌ فِي الْعَوَارِضِ

څرنګه چې بلاعذر روژه ماتول موجب ګناه ده او د عذر په وجه سره ګناه نه ده نو ضرورت د دی خبري دی چې هغه اعذار بیان کړي د کوموپه وجه سره چې روژه ماتول مباح دي او داسې اعذار اته ادي ،مرض ،سفر،حمل ،ارضاع ،شیخ فانی،اکراه او داسې لوږه او تنده چې د هغه له وجهې څخه د هلاکت یا زوال عقل ویره وي علامه مقدسی رحمه الله دا اعذار په یوه شعر کې بیان فرمایلي دي **شعر**،سقم واکراه وحمل وسفر::رضع وجوع وعطش وکبر ،مصنف رحمه الله له دي اتو اعذار څخه پنځه ذکر کړي دي او دري یې ترک کړي دي یعنی اکراه ،لوږه او تنده

(۳۹)لِمَنْ خَافَ زِيَادَةَ الْمَرَضِ الْفِطْرُ (۴۰)وَلِلْمُسَافِرِ وَصَوْمُهُ أَحَبُّ إِنْ لَمْ يَضُرَّهُ (۴۱)وَلَا قَضَاءَ إِنْ مَاتَا عَلَيْهِمَا (۴۲)وَيُطْعِمُ وَلِيُّهُمَا لِكُلِّ يَوْمٍ كَالْفِطْرَةِ بِوَصِيَّةٍ (۴۳)وَقَضَيَا مَا قَدَرَا (۴۴)بلاشرط ولاء (۴۵)فان جاء رمضان قدم الاداء علی القضاء

**ترجمه**:چاته چې د مرض د زیاتوالی ویره وي د هغه لپاره افطار جائزدی،او د مسافر لپاره او د مسافر روژه نیول ډیر ښه ده که ده لره مضر نه وو،او قضاء نشته پر دوئ دواړو که وفات شول په سفر یا ناروغی کې ، او اطعام دي وکې ولی د هري ورځې په عوض د فطرې په شان په وصیت کولو سره ،او قضاء دي راوړي څومره ورځې چې په روژه قادر وي ،د پرلپسې اینبودلو له شرط څخه بغیر ،نو که دوهم رمضان راورسیږي نو مقدم دي کړي اداء پر قضاء باندي .

**تشریح**:(۳۹)یعنی که کوم کس په رمضان المبارک کې ناروغه شواوده لره داندیشنه وه چې که روژه ونیسي نو ناروغي به یې زیاته شي او یا به یې روغ والی وځنډیږي نو دا کس دي روژه افطار کړي (یعنی روژه دي نه نیسي )او کله چې روغ شي نو قضاء دي راوړي ځکه چې د ناروغې زیاتوالی یا وږدوالی کله هلاکت ته مفضی کیږي له دي وجهې له دي څخه ځان ساتل واجب دي .مګرد مرض د زیاتوالی صرف وهم کافی نه

دي بلکه خپله تجربه يې وي چې ناروغې زياتيږي ياکوم ماهرمسلمان حاکم ورته ووايې چې ناروغې دي زياتيږي نوبيا روژه ماتولي شي .

(۴۰)قوله وللمسافرای وللمسافرالفطر،يعنی دمسافرلپاره هم روژه نه نيول جائزدي ځکه چې سفرله مشقت څخه خالي نه وي ځکه نونفس سفرعذروګڼل شوليکن که دمسافرلپاره روژه نيول مضرنه وو نودده لپاره روژه نيول ښه کار دی لقوله تعالی (وان تصوموا خيرلکم )(يعنی ستاسې روژه نيول افضل دي ).

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزددمسافرلپاره افطارافضل دی ﴿ لقوله ﷺ ليس من البر الصيام في السفر ﴾ (يعنی په سفرکې روژه نيول څه نيکې نه ده )،امام شافعي رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې حديث شريف په هغه صورت باندي محمول دی چې روژه نيول مضروي لکه څرنګه چې مشهوره ده چې يوشخص روژه ونيوله اوبې هوش شونبی کريم ﷺ ته معلومه شوه نوويې فرمايل چې په سفرکې روژه نيول څه نيکې نه ده .

ف:پائلټانوته دځينې طبی وجوهاتوپه بناء دروژي په حالت کې دپروازکولوممانعت دی دډاکټرانو هدايت داوي چې له طياري الوزولوڅخه وړاندي دي هم پائلټ څه خورک څښک وکړي اوله پروازڅخه په واپسې کې دي هم خوردونوش وکړي نوکه دددوئ داهدايات وقعتاداسې يې چې ددې په خلاف ورزي سره دنقصان غالب ګمان وي نوپه دي صورت کې دپائلټ لپاره روژه پريښودل اوپه نوروورځوکې قضاء کول جائزدی ،دسفرپه وجه سره بلاشبه دروژې قضاء کولواجازه شته ليکن له سفرڅخه وړاندي په خپل وطن کې خوراک شروع کول دضرورت په شرط سره مشروط دی.(فتاوی عثمانی :۲/۱۸۰)

(۴۱)که مريض اومسافرروژه ماته کړه يايې بلکل نه ونيوله بيا په دغه مرض ياسفرکې وفات شونوپرده ددي روژوقضاء لازمه نه ده يعنی عندالله مواخذه نشته اونه ددوئ څه فديه واجبه ده لقوله تعالی ﴿ فمن كان منكم مريضا او على سفر فعدة من أيام أخر ﴾ (يعنی کوم کس چې له تاسې څخه مريض وي ياپه سفرکې وی نوافطاردي وکړي دهغوشماردي بياپه نورو ورځوکې وکړي )نوله ايت مبارک څخه ثابتيږي چې په مريض اومسافرباندي دقضاء وجوب هغه وخت دی چې هغه دسفر اومرض له ختميدلوڅخه وروسته دومره زمانه پيداکړي چې په هغه کې دی روژي ونيسې اودلته څرنګه چې زوال مرض اوسفرشوی نه دی نوقضاء هم واجبه نه ده .

(۴۲)که په کوم مريض يامسافردرمضان دروژوقضاء واجب شوله اوهغه مرګ ته نژدي شواوهغه خپلوورثه وته دفديه ورکولووصيت وکړنودده ولی دي دصدقة الفطرپه اندازه دهري روژي په بدله کې يوه مسکين ته دغنمونيمايې صاع ورکړي يادي دخرماوو يااوربشويوه صاع ورکړي وجه داده چې داکس دخپل عمرپه اخرکې دروژي له اداء کولوڅخه عاجزشونودی دشيخ فانی په شان شولهذااوس دفديه ورکولوحکم دی اوداپرولی واجب ده په دي شرط چې دترکې له ثلث څخه به پوره کيږي کنه بقدرثلث واجب ده ،اوکه ده وصيت نه وو کړی نوپرورثه و لازمه نه ده ،هوتبرع کولی شي.

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزدبلاوصيت هم پرولی باندي لازم ده اوله کل ترکه څخه به يې ورکوي امام شافعي رحمه الله دالله تعالی قرض دبندګانوپرقرض باندي قياسوي ،احناف وايې چې دالله تعالی قرض

عبادت دی او دعبادت لپاره اختيار ضروري دی په دي وخت کې د اختيارصورت دادی چې هغه وصيت وکړي حال داچې ده وصيت نه ده کړی او وصيت په ثلث مال کې نافذيږي .

(۴۳) قوله وقضياماقدرا ای قضی المريض والمسافر ماقدراعليه من الايام بعدالصحة والاقامة ،يعنی که مريض روغ او مسافر مقيم شو بيا ځو ورځې وروسته وفات شونو د مرض او سفرپه حالت کې چې څومره روژي ده نه وي نيولي د هغو قضاء پرده لازمه ده نو که له مرض او سفر څخه وروسته دومره ورځې دي ژوندی وو څومره ورځې چې يې روژه نه ده نيولې نو د قضاء شويو ټولو روژو قضاء لازمه ده او که څومره روژي قضاء شوي وي له هغو څخه لږ ورځې ژوندی وو نوبقدرصحت واقامت د روژو قضاء واجبه ده دالله تعالی ارشاددی ﴿فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ (يعنی کوم کس چې له تاسو څخه مريض يا په سفر کې وي نو افطار دی وکړي او دهغو شمار دي په نورو ورځو کې وکړي ) نو څرنګه چې ده د قضاء لپاره ايام اخر موندلي ځکه دده پرذمه قضاء واجب ده .

(۴۴) قوله بلاشرط ولاء ای قضياماقدرابلاشرط ولاء ،يعنی بيا د رمضان شريف د قضاء شويو روژه پرلپسې نيول شرط نه دی ،که يې خوښه شوه متفرق دي ونيسې او که يې خوښه شوه پرلپسې دي ونيسې ځکه چې د قضاء روژو په باره کې نص يعنی ﴿فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ (يعنی کوم کس چې له تاسو څخه مريض يا په سفر کې وي نو افطار دی وکړي او دهغو شمار دي په نورو ورځو کې وکړي ) مطلق دی په هغه کې د پرلپسې نيولو قيد نشته لهذا پرلپسې نيول واجب نه دي ،هو پرلپسې نيول مستحب دي ترڅو چې د واجب په اداء کولو کې تلوار وشي .

(۴۵) که پريو چاباندي د رمضان د روژو قضاء واجب وي او ده قضاء مؤخره کړه ترڅو چې بل رمضان راورسيد و نو دا کس به اول د دي بل رمضان روژي نيسې ځکه چې دا وخت دده دی او دمخکنی قضاء شويو روژو قضاء به له دي څخه وروسته راوړي ځکه چې وروسته زمانه هم د فوت شويو روژو د قضاء زمانه ده .

ف :داحنافو په نزد د دي تاخيرله کبله پردي شخص فديه لازمه نه ده ځکه چې د قضاء حکم مطلق دی او د مطلق امر موجب علی الفور نه وي بلکه علی التراخی وي ،حال داچې د امام شافعی رحمه الله په نزد که تاخير بلاعذره وو نو د هري ورځې په عوض کې دي يو ه مسکين ته طعام ورکړي .

(۳۶) وللحامل والمرضع إن خافتا على الولد او النفس (۳۷) وَلِلشَّيْخِ الْفَانِي وهو يُفْدِي فَقَطْ (۳۸) وَلِلْمُتَطَوِّعِ بِغَيْرِ عُذْرٍ فِي رِوَايَةٍ (۳۹) وَيَقْضِي

**توجمه**: او حاملې ښځې ته او شيدي ورکونکی ښځې ته (افطار جائز دی ) که دوئ د وار ولره خوف وو د بچې يا د خپل ځان، او شيخ فاني ته او هغه دي صرف فديه ورکوي ،او د نفلي روژه نيونکی لپاره بلاعذر په يو روايت سره ،او قضاء به راوړي .

**تشريح**: (۴۶) قوله وللحامل ای الفطر جائز للحامل ،يعنی د حاملې ښځې لپاره او د شيدي ورکونکې ښځې لپاره که په روژه نيولو سره د خپلو بچيانو د ضائع کيدلو خطره وي يا د خپل ځان د هلاکيدو خوف وي نو دا واړه دي افطار وکړي او وروسته دي قضاء راوړي ځکه چې په دي دوصورتونو کې د روژي په نيولو کې حرج دی او حرج شرعاً مدفوع ده .

ف:په حاملې اومرضعې باندې فديه هم نشته ځکه چې دوئ دمسافراومريض په شان دعجز له وجهې افطارکړې دی .حال داچې دامام شافعي رحمه الله په نزدکه مورته دکوچني خوف وو نوپه دې صورت کې پردې دشيخ فاني په شان فديه واجب ده، احناف وايې چې دکوچني مورځکه چې وروسته قضاء کوې لهذا ددې پرذمه له قضاء څخه علاوه نورهيڅ نشته .

(۴۷)قوله وللشيخ الفاني الى الفطر جائز للشيخ الفاني ،شيخ فاني هغه سپين ږيري يا سپين ساري ښځه ده کوم چې په روژه نيولو قدرت نه لري ده ته فاني په دې وجه ويل کيږي چې دافناء ته قريب شوي دي ،يادده قوت فناء شوي دی ،دشيخ فاني په باره کې حکم داده چې دی به روژه نه نيسي اودهري روژې په بدله کې به يوه مسکين ته خوراک ورکوي لکه څرنګه چې په کفاراتوکې ورکول کيږي ،لقوله تعالى ﴿وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ اى وعلى اللذين لايطيقونه الخ﴾ (يعنى کوم کسان چې دروژه نيولو طاقت نه لري پردوئ صرف فديه واجب ده دهري ورځې په عوض کې يوه مسکين ته خوراک ورکړي)، مصنف رحمه الله دفقط په لفظ سره اشاره وکړه چې دفديې حکم صرف دشيخ فاني لپاره دی دحاملې اومرضعې لپاره داحکم نشته کمامر ،بياکه دشخص فاني له فديې ورکولو څخه وروسته په روژه نيولو قادرشونوپرده روژه نيول لازم دی فديه صدقه ګرځې .(کذافى الهنديه :۱/۲۰۷)

ف:دامام مالک رحمه الله په نزدپرشيخ فاني باندې فديه نشته دی شيخ فاني پرمسافراومريض باندې قياسوي،احناف ځواب ورکوي چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايې چې پورته ذکرشوی ايت دشيخ فاني په باره کې دی اوله کوم صحابي څخه په دې کې له ده سره اختلاف هم نه دی کړی لهذادا صحابه کرامو رضي الله عنهم له طرف څخه اجماع ده اودنص په موجودوالی کې قياس ته رجوع کول جائزنه دي.

(۴۸)قوله وللمتطوع بغير عذر فى رواية اى الفطر جائز للمتطوع بغير عذر فى رواية ،يعنى که چانفلي روژه شروع کړه نوبلاعذرددې په ماتولوکې اختلاف دی چې جائزده اوکه يا؟له امام ابويوسف رحمه الله څخه جوازمروی دی ځکه چې له حضرت عائشه رضي الله عنها څخه مروی ده چې موږيوځل حيس (يوقسم خوراک ده کوم چې دپنير،خرماوو، وروااوغوړوپه يوځای کولوسره جوړيږي )دنبي کريم ﷺ لپاره پټ کښېښود کله چې نبي کريم ﷺ تشريف راوړی نوموږدنبي کريم ﷺ په خدمت کې پيش کړنونبي کريم ﷺ وفرمايل چې مادروژې اراده کړې وه مګراوس يې خورم اوددې پرځای به بله قضاء راوړم .له دې روايت څخه ثابته شوه چې بلاعذرنفلي روژه ماتول جائزدی،حال داچې امام کرخي رحمه الله فرمايې چې بلاعذرنفلي روژه ماتول جائزنه دي ځکه چې مروی ده چې نبي کريم ﷺ وفرمايل کله چې له تاسوڅخه کوم يوه ته دطعام دعوت ورکړل شي نوکه روژه يې نه وي نوقبول دې کړي اوخوراک دې وخوري اوکه يې روژه وي نوده ته دې دعاء وکړي .له دې روايت څخه بلاعذردروژې دماتولوعدم جواز معلوميږي ځکه نوکه ماتول جائزوای نودماتولوحکم به يې کاووځکه چې اجابت دعوت سنت دی .

ف:همداقول مفتى به دی کمافى شرح التنوير:(ولايفطر)الشارع فى نفل (بلاعذر فى رواية )وهى الصحيحة(الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ۲/۱۳۱)وفى الهنديه :ذکرالرازى عن اصحابنا ان الافطار بغير عذر فى صوم التطوع لايحل وهو الاصح وهو ظاهر الرواية (هندية ۱/۲۰۸:)

(۴۰)قوله ويقضي اى ويقضى المتطوع اذاافطربعذروغيره ،يعنى له روژي ماتولوځخه وروسته په متطوع باندي ددي روژي قضاء كول واجب ده ځكه چې نفلي روژه چې شروع شوه نوهغه عبادت اوعمل دى اوعمل له باطل والى ځخه ساتل واجب دى لقوله تعالى ﴿ ولاتبطلوااعمالكم ﴾ (يعنى خپل اعما ل مه باطلوئ)اواعمال له باطلولوځخه ساتل په دي دول سره كيداى شي چې هغه پوره شي لهذانوله شروع ځخه وروسته دعمل پوره كول واجب دي اودكوم عمل پوره كول چې واجب وي دفسادپه صورت كې دهغه قضاء كول هم واجب دي .

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزددنفل(خواه كه لمونځ وي كه روژه وي )په ماتولوسره دهغه قضاء لازمه نه ده ځكه چې ځومره برخه ده اداء كړي ده په هغه كې داكس متبرع دى اوپرمتبرع باندي ځه الزام نشته لقوله تعالى ﴿ ماعلى المحسنين من سبيل ﴾ (په تبرع كونكوباندي ځه الزام نشته ).

(۵۰)وَلَوْ بَلَغَ صَبِيٌّ أَوْ أَسْلَمَ كَافِرٌ أَمْسَكَ يَوْمَهُ (۵۱) وَلَمْ يَقْضِ شَيْئًا (۵۲) وَلَوْ نَوَى الْمُسَافِرُ الْإِفْطَارَ ثُمَّ قَدِمَ وَنَوَى الصَّوْمَ فِي وَقْتِهِ صَحَّ (۵۳) وَيَقْضِي بِإِغْمَاءٍ سِوَى يَوْمٍ حَدَثَ فِي لَيْلَتِهِ (۵۴) وَبِجُنُونٍ غَيْرِ مُمْتَدٍّ (۵۵) وَبِإِمْسَاكٍ بِلَا نِيَّةِ صَوْمٍ وَفِطْرٍ

**ترجمه**:اوكه هلك بالغ شويا كافرمسلمان شونو امساك دي وكړي باقي ورځ ،اوقضاء دي نه كوي دهيڅ،اوكه كوم مسافردافطارنيت وكړ بيا كورته راغى اودروژي نيت يې وكړپه وخت كې دننه نودا صحيح ده ،اوقضاء دي راوړي دبې هوشۍ په وجه سره ماسواله هغې ورځې دكومې په شپه كې چې بې هوشي پېښه شوي ده ،اودجنون غيرممتدله وجهې ،اوپه امساك كولوسره دروژي يا افطارله نيت كولوځخه بغير.

**تشريح**:(۵۰)يعنى كه چيرته درمضان المبارك په ورځ كې كوم نابالغ هلك بالغ شوياكافرمسلمان شونودوئ دواړه دي باقي ورځ له خوراك ځښاك اوجماع كولوځخه اجتناب وكړي ترڅوله روژه داروسره دمشابهت داختيارولوپه وجهې سره درمضان المبارك دمقدس وخت حق اداء شي .

(۵۱)بيادمسلمان اوبالغ كيدلود ورځې اوله دي ځخه دوړاندي ورځوقضاء پردوئ لازمه نه ده ځكه چې په دي ورځوكې دعدم اهليت له كبله داخلګ دباري تعالى دامرمخاطب نه دي ،اودرمضان المبارك په باقي مانده ورځوكې پردوئ روژه نيول فرض دي ځكه چې اوس په دوئ كې اهليت هم شته (چې عاقل ،بالغ اومسلمان دى )اوسبب روژه يعنى درمضان المبارك مياشت هم موجود ده .

ف:دامام زفراوامام مالک په نزدپردوئ ددهمدي ورځې قضاء لازمه ده ځكه چې دوئ ددي ورځې يوځه وخت پيداكړى دى اودوخت يوجزء موندل دټول وخت دموندلوپه شان دى لكه چې دلمانځه دوخت كه يې يوجزء وموندنوهم لمونځ ددوئ پرذمه لازم دى ،احناف ځواب وركوي چې دروژي اولمانځه په وخت كې فرق دى ځكه چې دروژي له وخت ځخه كه يوجزء وموندل شونوپه دي كې روژه اداء كول ممكن نه دي حال داچې دلمانځه دوخت كه يوجزء وموندل شونوپه دي كې دلمانځه اداء كول ممكن دي په دي وجه روژه پرلمانځه قياسول صحيح نه دى.

(۵۲)كه كوم مسافردسفرپه حالت كې دافطارنيت وكړبياهغه كورته راغى تراوسه يې ځه خوړلي ياځښلي نه وو اوپه وخت كې دننه يې دروژي نيت وكړيعنى له نصف نهارځخه يې وړاندي دروژي نيت وكړنودا صحيح ده ځكه چې سفرمنافي الصوم نه دى دسفرپه وجه سره صرف دافطار رخصت دى نوكله چې

سفرزائل شونو داشخص دمقیمنوسره ملحق شواو دمقیمنوحکم دادی چې له نصف نهارڅخه وړاندي دروژي نیت کولی شي.

(۵۳)یعنی که یوڅوک په رمضان کې څوورځې بې هوشه وو اوله مفطراتوڅخه محفوظ وو نوپه کومه ورځ چې بې هوشي طاري شوي ده له هغې ورځې څخه ماسوادنوروورځوقضاء به کوي ځکه چې په دي ورځوکې که څه هم دی له مفطراتوڅخه محفوظ وو مګردنیت دنه وجودپه وجه سره روژه نه ده متحققه شوي ځکه نوقضاء واجب ده ،البته په کومه ورځ چې بې هوشي پیښه شوه دهغې ورځې روژي قضاء به نه کوي ځکه چې دظاهرحال دمسلمان دادی چې ده په شپه کې دروژي نیت کړی دی اوله مفطراتوڅخه هم محفوظ وولهذادا روژه وشوه ځکه پر ده قضاء واجبه نه ده .

ف:نوکه په قطعي ډول سره معلومه شوه چې ده دروژي نیت کړی وو نوددي ورځې قضاء پرده یقینا نشته،اوکه په قطعي ډول سره معلومه شوه چې ده نیت نه وکړی نوبیاددي ورځې قضاء هم پرده لازمه ده ځکه چې دنیت دنه تحقق له کبله ددي ورځې روژه هم نه ده موجوده شوي كمافي شرح التنوير:(وقضى ايام اغمائه ولو) كان الاغماء(مستغرقاللشهر)لندرة امتداده(سوى يوم حدث الاغماء فيه اوفي ليلته)فلايقضيه الااذاعلم انه لم ينوه،قال ابن عابدين (قوله الااذاعلم الخ )قال الشمني وهذااذالم يذكرانه نوى اولاواذاعلم انه نوى فلاشك في الصحة وان علم انه لم ينوفلاشك في عدمه (الدرالمختارمع ردالمحتار:٢/١٣٢)

(۵۴)قوله وبجنون غيرممتداي ويقضي مافاته بجنون غيرممتد،یعنی که دمجنون جنون غیرممتدوو یعنی ټوله میاشت نه وو بلکه ده ته درمضان المبارک په ځینې برخه کې افاقه وشو (یعنی جوړشو )نودی به دتیروشویو ورځوقضاء راوړي اودابنده ورځوروژي به نیسي ځکه چې سبب یعنی شهودشهررمضان متحقق دی اواهلیت هم موجوددی په دي وجه سره چې اهلیت وجوب انسانیت دی دکوم په وجه سره چې دانسان اوڅاروی ترمنځ فرق دی له همدي وجه خوپرمجنون باندي صدقة الفطراونفقه محارم واجب ده ځکه نوپرمجنون باندي دتیرشویو ورځوقضاء لازمه ده .

ف:البته دجنون ممتدپه صورت کې قضاء لازمه نه ده ځکه چې په دي کې حرج دی اوحرج شرعاًمدفوع دی ،جنون ممتدهغه دی کوم چې ټوله میاشت وي كمافي شرح التنوير:(وان استوعب )الجميع مايمكنه انشاء الصوم فيه على مامر(لا)يقضي مطلقاللحرج،لايخفى انه اذااستوعب الجنون الشهر كله لايقضي بلاخلاف مطلقا(الدرالمختارمع ردالمحتار:٢/١٣٣)

(۵۵)قوله وبامساک بلانية صوم وفطراي ويقضي مافاته عنه بامساک بلانية وفطر،یعنی که چادروژي له نیت اودافطارله نیت څخه بغیرپه رمضان کې امساک وکړیعنی له خوراک څښاک وغیره څخه یې ځان ساتلی وو نوهم دده داروژه صحیح نه ده لهذادی به ددي قضاء راوړي ځکه چې پرده واجب امساک علی وجه العبادة دی اوعبادت له نیت څخه بغیرنه کیږي لهذادده داروژه صحیح نه شوه ځکه قضاء لازمه ده .

ف:دامام زفر رحمه الله په نزدپه رمضان شریف کې بغیرله نیت څخه په امساک کولوسره هم صوم رمضان اداء کیږي ځکه چې پرمکلف امساک واجب دی څرنګه چې هم امساک وکړي هغه له صوم رمضان څخه واقع کیږي لکه چې یوڅوک ټول نصاب یوه فقیرته ورکړي نوزکوة اداءکیږي ،احناف وایې پرده امساک علی جهة العبادة لازم دی کوم چې له نیت څخه بغیرنشي راتلای لهذابلانیت روژه نه اداء کیږي.

(۵۶) وَلَوْ قَدِمَ مُسَافِرٌ اَوْ طَهُرَتْ حَائِضٌ (۵۷) اَوْ تَسَحَّرَ ظَنَّهُ لَيْلاً وَالْفَجْرُ طَالِعٌ (۵۸) اَوْ اَفْطَرَ كَذٰلِكَ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ اَمْسَكَ يَوْمَهُ وَقَضٰى وَلَمْ يُكَفِّرْ (۵۹) كَاَكْلِهِ عَمْدًا بَعْدَ اَكْلِهِ نَاسِيًا (۶۰) وَنَائِمَةٌ وَمَجْنُوْنَةٌ وُطِئَتَا

**ترجمه:** او که مسافر کور ته راغی یا پاکه شوه حائضه، یا یې پیشلمی وکړ د شپې په ګمان سره حال دا چې سهار شوی وو، یا یې افطار وکړ همدا شان حال دا چې لمر لانه وو لویدلی نو امساک دې وکړي باقي ورځ او قضاء دې راوړي او کفاره دې نه ورکوي، لکه چې عمدا خوراک وکړي په هیره تر خوراک کولو څخه وروسته، او په ویده ښځه او په لیونی ښځه (کفاره نشته) له کومې سره چې جماع شوي وي.

**تشریح:** (۵۶) قوله ولوقدم مسافرالخ، شرط دی او امسک یومه وقضی الخ یې جزاده، یعنی که مسافر د رمضان المبارک په ورځ کې کور ته راغی او له سهاره څخه یې روژه نه وه نیولې نو پر دې شخص د روژه دار په شان باقي ورځ له مفطراتو یعنی خورک څښاک او جماع کولو څخه اجتناب کول واجب دی او دا وجوب د رمضان د مقدس وخت د حق اداء کولو لپاره دی، وروسته دې د دې قضاء وکړي، د قضاء حکم په دې صورت کې دی چې ده له طلوع فجر څخه وروسته څه شی خوړلی وي یا خو یې څه شی خوړلی نه وي مګر له نصف النهار څخه وروسته کور ته راغی نو اوس څرنګه چې د نیت صوم وخت تیر شوی دی لهذا د دې ورځې قضاء راوړل وروسته ضروري دي، همدا حکم د هغې ښځې هم دی کوم چې د ورځې په بعض حصه کې له حیض څخه پاکه شي.

(۵۷) یعنی که د رمضان په شپه کې چا په دې ګمان سره پیشلمی وکړ چې تر او سه پورې صبح صادق نه ده ختلې حال دا چې وروسته معلومه شوه چې صبح صادق شوي وو نو په دې صورت کې په دې شخص باندې د وخت د حق په وجه سره پاتې ورځ له مفطراتو څخه اجتناب کول واجب دي وروسته به د دې ورځې قضاء راوړي ځکه چې روژه د اسې حق شرعی ده چې په فوت کیدلو سره نه ساقطیږي بلکه د دې ضمان بالمثل واجبیږي، البته پر ده کفاره نشته ځکه چې د عدم قصد په وجه سره جنایت کامل نه دی قاصر دی.

(۵۸) همدا شان که چا د اګمان وکړ او روژه یې ماته کړه چې لمر لویدلی دی بعد کې معلومه شوه چې لمر نه وو لویدلی نو په دې صورت کې هم بقیه ورځ د حق وخت له وجهې پر ده امساک او بعد کې قضاء لازمه ده ځکه چې روژه د اسې حق شرعی ده چې په فوت کیدلو سره نه ساقطیږي بلکه د دې ضمان بالمثل واجبیږي، البته پر ده کفاره نشته ځکه چې د عدم قصد په وجه سره جنایت کامل نه دی قاصر دی.

(۵۹) قوله کاکله عمدا ای کمایجب القضاء فقط باکله، یعنی پورته ذکر شوي صورتونه د اسې دي لکه چې یو څوک په هیره سره څه وخوري او دا یې ګمان شي چې روژه ماته شوه بیا په قصد سره خوراک وکړي نو پر ده د دې روژې قضاء شته مګر کفاره نشته ولې چې په هیره سره له خوراک کولو وروسته شبه پیدا شوه او کفاره د شبهې په وجه سره ساقطیږي، دا د امام ابو حنیفه رحمه الله قول دی حال دا چې صاحبین فرمایي چې د جنایت په وجه سره پر ده کفاره لازمه ده.

**ف**. مفتی به قول د امام ابو حنیفه رحمه الله دی: کمافی البحر: وانما لم تجب الکفارة بافطاره عمدا بعد اکله وشربه او جماعه ناسیا لانه ظن فی موضع الاشتباه بالنظیر وهو الاکل عمدا لان الاکل مضاد للصوم ساهیا او عامدا فاورث شبهة ....... واطلقه فشمل ما اذا علم بانه لا یفطره بان بلغه الحدیث او الفتوی اولا وهو قول ابی حنیفة رحمه الله وهو الصحیح (البحر الرائق: ۲/۲۹۳)

(۶۰) د مصنف رحمه الله قول، ونائمة ومجنونة، معطوف دی پر، اكله عمدا باندي، اى كما يجب القضاء فقط على نائمة ومجنونة وطئتا، يعنی دپورته ذكرشوي صورت په شان داصورت هم دی چې له روژه داري ښځې سره دخوب په حالت کې جماع وكول شي نوپردي ښځې باندي قضاء لازمه ده ځکه چې منافی صوم متحقق شو. مگر كفاره نشته ولی چې له دي ځخه دجماع صدوربلاقصده وشو، همدا حكم ددي صورت هم دی چې له روژه داري مجنونې سره جماع وكول شي دكوم چې صورت دادی چې يوي روغي ښځې په شپه کې دروژي نيت وكړ بيا په ورځ کې پردي جنون طاری شواوخاوندله دي سره جماع وكړه نوپردي ښځې كفاره نشته صرف قضاء شته البته كه واطی روژه داروو نوپرده كفاره اوقضاء دواړه لازم دي كمافی الشامية: اما الواطی فعليه القضاء والكفارة اذلافرق بين وطئه عاقلة اوغيرها (ردالمحتار: ۲/۱۱۳)

ف: دامام شافعی اوفررحمهما الله تعالی په نزدپه نائمه اومجنونه باندي قضاء هم نشته هغوئ قياس كوي پرهيره باندي په خوراک كونكی باندي، مگردوئ ته ځواب وركړل شوی دی چې دنسيان په صورت کې دقضاء نه لازم والی له نص ځخه خلاف قياس ثابت ده لهذپردي نائمه اومجنونه قياسول صحيح نه دي.

## فَصْلٌ

كله چې مصنف رحمه الله له هغوروژو ځخه فارغ شودكوموجوب چې دالله تعالی له طرف ځخه دی نواوس يې دهغوروژوبيان شروع كړكومې چې انسان په خپله پرځان لازموي كوم ته چې نذرويل كيږي ځرنګه چې واجب بايجاب الله تعالى فرض دی اوواجب بايجاب العبدواجب دی له دي وجهې يې واجب بايجاب الله تعالى وراندي ذكركو.

ف: (۱) دشي منذورلپاره شرط داده چې دده له جنس ځخه به په شريعت کې هم واجب وي كه دده له جنس ځخه په شريعت کې واجب نه وونوددہ نذرنه صحيح كيږي لكه دناروغ دعيادت نذركول ځرنګه چې ددي له جنس ځخه كوم شي واجب نشته لهذاداسې نذرصحيح نه دی. (۲) دوهم شرط دادی چې منذوربه په خپله مقصودوي دكوم بل عبادت لپاره به وسيله نه وي نوداوداسه نذركول صحيح نه دي ځکه چې اودس په خپله مقصودنه دی بلكه دلمانځه وغيره لپاره وسيله ده. (۳) شی منذوربه معصيت نه وي لكه غيرالله ته دسجدي كولونذركول نوځرنګه چې دافعل حرام دی لهذاددي نذركول جائزنه دی. (كذافی الهندية: ۱/۲۰۸)

(۶۱) مَن نَذَرَ صَومَ يَومِ النَّحرِ أَفطَرَ وَقَضىٰ (۶۲) وَإِن كَانَ نَوَى يَمِينًا كَفَّرَ أَيضًا (۶۳) وَلَو نَذَرَ صَومَ هٰذِهِ السَّنَةِ أَفطَرَ أَيَّامًا مَنهِيَّةً وَهِيَ يَومَا العِيدِ وَأَيَّامُ التَّشرِيقِ وَقَضَاهَا (۶۳) وَلَا قَضَاءَ إِن شَرَعَ فِيهَا ثُمَّ أَفطَرَ

ترجمه: چاكه ديوم النحردروژي نيولونذروكړنوهغه دي افطاروكړي اوقضاء دي راوړي، اوكه دده قسم نيت هم كړی وونوكفاره دی هم وركړي، اوكه يې نذروكړددي پوره كال دروژودنيولونوافطاردي وكړي په ايام منهيه کې اوهغه دعيدينودوې ورځې دي اوايام تشريق دي اوددوئ قضاء دي راوړي، اوقضاء نشته كه يې روژه شروع كړه په دي ورځوكې اوبيايې افطاروكړ.

تشريح: (۶۱) يعنی كه يوچاپه يوم نحركې دروژي نيولونذروكړمثلاويې ويل: لله على صوم يوم النحر، (پرمادخدای جل جلاله لپاره دلوی اخترد ورځې روژه لازمه ده) نوداند رصحيح دی ځکه په يوم نحركې روژه نيول

بنفسه مشروع ده البته دغيرپه وجه سره ممانعت راغلی دی اوهغه دالله تعالی له ضيافت څخه اعراض كول دي لكه چې په حديث شريف كې دي﴿الالاتصوموا في هذه الايام فانها ايام اكل وشرب وبعال﴾ (خبردار!په دي ورځوكې روژه مه نيسئ ځكه چې داورځې دخورك څښك اوجماع دي )نودبنفسه مشروع والی په وجه سره نذرصحيح دی ليكن په دي ورځ دي روژه نه نيسې بلكه بعدكې دې قضاء راوړي ترڅوله معصيت څخه خلاص شي كوم چې دالله تعالی له ضيافت څخه داعراض كولوپه وجه سره له روژي سره متصل شوی دی.

ف:ليكن كه ده له ممنوع والی سره سره په دي ورځ روژه ونيوله نودده نذرپوره شوځكه چې په كوم ډول سره چې ده دروژي التزام كړی وو په هغه ډول سره روژه ده ونيوله يعنی ددي روژي په نذركولوسره چې كومه روژه پرده واجبه شوی ده هغه ناقصه ده اوده هم ناقصه اداء كړه ځكه نودده ذمه فارغيږي.( كذافي الهندية :1/210)

(62)اوكه ده له نذرسره دقسم نيت هم كړی وو اوبيايې روژه ماته كړه نودطرفينوپه نزدځرنګه چې دانذراويمين دواړه دي لهذاله قضاء سره به كفاره يمين هم اداء كوي ،حال داچې دامام ابويوسف رحمه الله په نزدپه دي صورت كې پرده صرف نذردی كفاره يمين نشته ځكه چې په دي كلام كې نذرحقيقت اويمين مجازدی نوكه نذراويمين دواړه مرادشي نوجمع بين الحقيقة والمجازبه لازمه شي كومه چې جائزنه ده له دي وجهې نودواړه نشي مرادكيدلی ،بياځرنګه چې داكلام په نذركې حقيقة دی په دي وجه سره به ددواړودنيت كولوپه صورت كې حقيقت ته ترجيح وركول كيږي لهذاداكلام به صرف نذروي .دطرفينودليل دادی چې مذكوره كلام دوجوب لپاره وضع شوی دی البته داكلام په وجوب كې دننه په دوه جهته (يعنی جهة نذراوجهة يمين )سره مستعمل دی اوپه دواړوجهتونوسره عمل كول هم ممكن دی ځكه چې په دي دووجهتونوكې څه منافات نشته نوله جهة نذرسره سره دجهة يمين په رعايت كولوسره موږوويل چې ديمين كفاره به هم اداء كوي.

ف:دطرفينوقول راجح دی لماقال العلامة الحصكفي :وان نواهمااونوی اليمين بلانفي النذركان في الصورتين نذراويمينا حتی لوافطريجب القضاء للنذروالكفارة لليمين عملابعموم المجاز (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:2/136)

(63)كه يوچاڅټول كال دروژي نيولونذروكړنوداكس به په ايام منهيه كې روژه نه نيسي ځكه چې په دي ورځوكې دروژي نيولوممانعت راغلی دی﴿قال النبی ﷺ الالاتصوموا في هذه الايام فانها ايام اكل وشرب وبعال﴾ (خبردار!په دي ورځوكې روژه مه نيسئ ځكه چې داورځې دخورك څښك اوجماع دي )،ايام منهيه ټولې پنځه ورځې دي ،دوه ورځې دكوچنی اختراو لوی اختردي اودري ورځې ايام تشريق (يعنی دذی الحجه يولسمه ،دولسمه اوديارلسم تاريخ)دي ،اوددي ورځو دروژودي په وروسته كې قضاء راوړي ځكه چې داروژي بنفسه مشروع دي دممانعت وجه دالله تعالی له ضيافت څخه اعراض كول دي ، لهذادبنفسه مشروع والی په وجه سره ددوئ قضاء لازمه ده.

(64)اوكه چاپه ايام منهيه كې له روژه شروع كولوڅخه وروسته افطاروكړ(يعنی روژه يې ماته كړه )نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپرده قضاء نشته ،حال چې دصاحبينوپه نزدپرده ددغې روژي قضاء لازمه ده ځكه چې په شروع كولوسره داروژه پرده لازميږي لكه چې په نذركولوسره لازميږي ،دامام صاحب دليل

دادي چې دقضاء لازم بالشروع بناء پردي ده چې په كوم عمل كې شروع شوي وي دهغه اتمام لازم وي حال داچې داخبره دلته نشته ځكه چې په نفس شروع سره داكس دمنهى عنه عمل مرتكب ګرځي دكوم چې دپرېښودلو ده ته حكم شوى دى ،حال داچې دنذر حكم له دي ځخه مخالف دى ځكه چې دنذر په صورت كې ناذر په نفس نذر كولو سره دمنهى عنه مرتكب نه ګرځي ځكه چې منهى عنه خوپه نذر باندي عمل كول دي نه نفس نذر ،له دي وجهې ځخه په ايام منهيه كې روژي شروع كول په نذر باندي قياسول صحيح نه دي .

**ف**: دامام ابو حنيفه رحمه الله قول راجح دى كماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد نورالله مرقده: والراجح والصحيح قول الامام اعنى قوله الثابت بالظاهر الرواية واليه اشار صاحب الهداية حيث صرح بانه ظاهر الرواية وكذا قوله وهو الاظهر وفى الشامية والبحر الرائق انه لايعدل عن ظاهر الرواية الا اذا صرح اهل الترجيح والفتوى بخلافه ولم يوجد ههنا فكان هو المذهب.

**ف**: داكثر عوامو له طرفه چې دمرده ګانو لپاره كوم نذرونه كيږي اودبزرګانو په قبرونو چې كومې موم بتى،خوشبو اوروپى پاشل كيږي ،له كومو ځخه چې مقصد داورګانو خوشحالول اوددوئ تقرب حاصلول وي،داټول باتفاق ايمه حرام اوباطل دي ،اوددي دحرام اوناجائزوالى ځووجوهې ليكلي دي ،يوخودا چې دادمخلوق لپاره نذرمنل دي حال داچې نذرعبادت دى كوم چې په الله تعالى پسې مخصوص دى . دوهم داچې دچالپاره يې نذركړى دى هغه خومرده دى نو هغه دكوم شي لپاره ځرنګه مالك كيداى شي ، اودريم داچې په دي مرده باندي دااعتقادهم كيږي چې دى په عالم كې تصرف كوي، داعقيده لرل كفردى كمافى شرح التنوير: واعلم ان النذر الذى يقع للاموات من اكثر العوام ومايؤخذ من الدراهم والشمع والزيت ونحوها الى ضرائح الاولياء الكرام تقربا اليهم فهو بالاجماع باطل وحرام، وقال ابن عابدين: (قوله باطل وحرام) لوجوه منها انه نذر لمخلوق والنذر للمخلوق لايجوز لانه عبادة والعبادة لاتكون لمخلوق ومنها ان المنذور له ميت والميت لايملك ومنها انه ان ظن ان الميت يتصرف فى الامور دون الله تعالى واعتقاده ذلك كفر(ردالمحتار: ٢/١٣٩)

## بَابُ الإعْتِكَافِ

داباب داعتكاف په بيان كې دى

اعتكاف له عكوف ځخه ماخوذ دى لغوى معنى يې لازم نيول ،اوحبس اومنع ده اودشريعت په اصطلاح كې داعتكاف په نيت په مسجد كې پاته كيدلو ته اعتكاف ويل كيږي .دباب اعتكاف له باب الصوم ځخه دوروسته راوړلو وجه داده چې صوم داعتكاف لپاره شرط ده اوشرط طبعاله مشروط ځخه مقدم وي لهذامصنف رحمه الله وضعاهم مقدم كو .

(٦٥) سُنَّ لُبثٌ في مَسجِدٍ بِصَومٍ وَنِيَّةٍ (٦٦) وَأَقَلُّهُ نَفلًا سَاعَةٌ (٦٧) وَالمَرأَةُ تَعتَكِفُ فِي مَسجِدِ بَيتِهَا (٦٨) وَلَا يَخرُجُ مِنهُ إِلَّا لِحَاجَةٍ شَرعِيَّةٍ كَالجُمُعَةِ أَو طَبعِيَّةٍ كَالبَولِ وَالغَائِطِ (٦٩) فَإِن خَرَجَ سَاعَةً بِلَا عُذرٍ فَسَدَ (٧٠) وَأَكلُهُ وَشُربُهُ وَنَومُهُ وَمُبَايَعَتُهُ فِيهِ وَكُرِهَ إِحضَارُ المَبِيعِ

**ترجمه**: سنت دى په مسجد كې پاته كيدل له روژي اونيت سره ،اولږترلږه نفلى اعتكاف يوګړى دى ، اوښځه دي اعتكاف كوي دخپل كورپه مسجد كې ،اونه دي وځي له مسجد ځخه مګردشرعى حاجت لپاره لكه جمعه اوطبعى حاجت لپاره لكه بولى اوغائط ،نوكه راووتى يوګړى بلاعذره نواعتكاف فاسدشو ،اودده خوړك ځښك ،ويده كيدل اواخيستل خرڅول به په مسجد كې وي اومكروه ده حاضرول دمبيع مسجدته .

**تشريح** :اعتکاف پردري قسمه دی. /نمبر۱. واجب. کوم چې دنذرپه طريقه سره لازم کړل شي. /نمبر۲. سنت مؤکده. کوم چې درمضان المبارک په اخري عشره کې کيږي. /نمبر۳. مستحب. کوم چې له دي دوڅخه علاوه وي. (کذافي الدر المختار على هامش ردالمحتار: ۲/۱۳۱)

(۶۵)مصنف رحمه الله فرمايي چې په مسجدکې پاته کيدل له روژي اونيت سره سنت دی ،دلته چې مصنف رحمه الله اعتکاف ته سنت ويلي دي له دي څخه مراددادوهم قسم دی ،اودوهم قسم دسنت والی دليل دادی چې نبی کريم ﷺ درمضان شريف په اخری عشري کې په اعتکاف کولوباندي مواظبت فرمايلي دی،مګرپه صحابه کرامو رضي الله عنهم کې چې کوموکسانو درمضان په اخيري عشري کې اعتکاف نه ده کړی نبی کريم ﷺ په هغوئ انکارهم نه ده کړی لهذا داددي دليل دی چې درمضان په اخری عشري کې اعتکاف سنت کفايي دی.

**ف**:بيا په مسجدکې پاته کيدل رکن دی ځکه چې اعتکاف په پاته کيدلوسره موجوديږي ،اوروژه داعتکاف واجب لپاره خوشرط ده ،باقي دنفل اعتکاف لپاره شرط ده اوکه نه ده په دي باره کې روايات مختلف دي ظاهررواية دعدم اشتراط دی اودحسن بن زيادپه رواية شرط ده .عدم اشتراط راجح ده لمافي الهندية :وظاهر الرواية عن ابی حنيفة وهو قولهماان الصوم ليس بشرط في التطوع (الهندية: ۱/۲۱۱)

**ف**:دعلامه شامی رحمه الله له تحقيق څخه معلوميږي چې دسنت اعتکاف لپاره هم روژه شرط ده ،اوپه متونوکې نه ذکرکول په دي وجه څخه ده چې عادة مسنون اعتکاف له روژي څخه بغيرنه کيږي لهذاکه چاپه اخري عشره کې اعتکاف کاوو مګردمرض وغيره په وجه سره يې روژي نه ونيولي نوپه دي اعتکاف سره سنت نه اداء کيږي بلکه دااعتکاف به نفل ګڼل کيږي کمافي الشامية:قلت ومقتضى ذالک ان الصوم شرط ايضافي الاعتکاف المسنون لانه مقدربالعشرالاخيرحتى لواعتکفه بلاصوم لمرض اوسفرينبغي ان لايصح بل يکون نفلافلاتحصل به اقامة سنة الکفاية (ردالمحتار: ۲/۱۳۱)

**ف**:نيت څرنګه چې په ټولوعباداتومقصوده وکې شرط دی لهذااعتکاف لپاره هم شرط دی ،اودنارينه په حق کې داعتکاف له شروط جوازڅخه مسجدوالی اومسجدبه هم داسې وي چې دهغه لپاره امام اومؤذن وي اوپه ده کې پنځه سره لمونځونه ياځيني لمونځونه په جماعت سره اداء کيږي،﴿لحديث حذيفة رضي الله عنه لَا اعْتِكَافَ إِلَّا فِي مَسْجِدِ جَمَاعَةٍ﴾ (يعنی اعتکاف نشته مګرپه مسجد جماعة کې )وفي الهندية :واماشروطه فمنهاالنية حتى لواعتکف بلانية لايجوزبالاجماع ومنهامسجدالجماعة فيصح في کل مسجدله اذان واقامة هو الصحيح(هندية: ۱/۲۱۱)

(۶۶)دنفلي اعتکاف لږترلږه موده يوساعت ده دادامام محمد رحمه الله مذهب دی اودامام ابويوسف رحمه الله په نزدلږموده ديوې ورځې اکثره حصه ده ،اودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدکمه موده يوه کامله ورځ ده ،په اقله نفلا ،کې نفلابناء برحاليت منصوب دی ای حال کونه نفلا ،له امام ابوحنيفة رحمه الله څخه ظاهرروايت هغه دی کوم چې دامام محمد رحمه الله قول دی اوهمدامفتی به دی کمافي شرح التنوير:(واقله نفلاساعة )من ليل اونهارعندمحمدوهو ظاهرالرواية عن الامام لبناء النفل على المسامحة وبه يفتى (الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ۲/۱۳۲)

(۶۷)ښځه به دخپل کورپه مسجدکې اعتکاف کوي ځکه چې دکورمسجددښځې لپاره ډيرمحفوظ دی اودکورله مسجدڅخه مرادهغه ځای دی چېرته چې دالمونځ کوي ځکه چې اعتکاف

دلمانځه دانتظار عبادت دی او ښځه په مسجد بيت کې دلمانځه انتظار کوي نه په شرعی مسجد کې لهذا په شرعی مسجد کې دښځې اعتکاف کول مکروه دي .

ف:نو که ښځې دلمانځه لپاره په کورکې کوم داسې ځای نه متعين کړی چې په هغه کې دي لمونځ کاوو نوبيا په باقی مانده کورکې دښځې اعتکاف کول صحيح نه دي ،او که يې داراده اعتکاف پروخت دلمانځه لپاره ځای متعين کړنو هم صحيح دی کمافی شرح التنوير: ولايصح فی غير موضع صلاتها من بيتها کمااذالم يکن فيه مسجد قال ابن عابدين :(قوله کمااذالم يکن فيه مسجد)ای مسجدبيت وينبغی انه لواعدته للصلوة عندارادة الاعتکاف ان يصح (الدر المختار علی هامش ردالمحتار:۲/۱۴۰)

(۶۸)يعنی دمعتکف لپاره له مسجد څخه وتل جائزنه دي مګردووضرورتونو لپاره يودينې لکه دجمعه وغيره لپاره وتل، دوهم ضرورت طبعي لکه دبول وبراز لپاره وتل ،دضرورت دينې يعنی جمعه لپاره وتل په دي وجه جائزدی چې جمعه واجب بايجاب الله تعالی ده او اعتکاف واجب بايجاب العبد دی او دبنده دواجب کړي مرتبه دالله تعالی له واجب کړي څخه کښته ده لهذا داعتکاف په وجه سره جمعه ساقطول جائزنه ده،اودې واقع والی له وړاندي څخه معلوم هم دی لهذا ددي لپاره وتل به له اعتکاف څخه مستثنی وی،اودضرورت طبعي لپاره دوتلو دليل دحضرت عائشې رضي الله عنها حديث دی فرمايي:﴿کان النبی ﷺ لايخرج من معتکفه الالحاجة الانسان ﴾(يعنی نبی کريم ﷺ به له خپل معتکف څخه نه راوتی مګر دضرورت انسانې لپاره )،همدارازدضرورت انسانې پيښيدل له وړاندي څخه لامعلوم دی چې ددي لپاره وتل ضروري ده لهذا ددي ضرورتونو لپاره له اعتکاف څخه وتل په خپله له اعتکاف څخه مستثنی دی.

ف:که په مسجد کې دننه داودس کولوداسې ځای وي چې اوبه له مسجد څخه دباندي توييږي نوله مسجد څخه دباندي وتل جائزنه دي که نه نو جائزدي اودس خواه که دفرض لمانځه لپاره وي يادنفل ياتلاوت اوياذکر لپاره وي دټول همدا حکم دی ،دلاسونو پريمنځلو لپاره وتل جائزنه دي په مسجد کې دي په يولوښي کې پريمنځي .(احسن الفتاوی :۴/۵۱۰)

ف:له غسل فرض څخه ماسوادکوم بل غسل لپاره دمعتکف له مسجد څخه وتل صحيح نه دي (خيرالفتاوی:۱۳۳/ ۴. وامدادالاحکام :۲/۱۴۹)ليکن په احسن الفتاوی کې راغلی دي چې دغسل جمعه لپاره وتلی شي ،ښه خبره داده چې دحاجت ضروريه لپاره له وتلو څخه وروسته هلته په غسل خانه کې داوس پرځای زرزرغسل وکړي نو دجمعه غسل به هم وشي او مستقل دغسل جمعه لپاره وتل به هم رانه شي .

ف:داعتکاف په نذر کې دجنازي دلمانځه ،عيادت مريض ،اودعلم په مجلس دحاضريدلو لپاره دخروج استثناء صحيح ده او وتل جائزدي په دي شرط چې دنذرپه شان به يې استثناء هم په ژبه سره کړي وي ،صرف دزړه نيت کافی نه دی مګر که يې په مسنون اعتکاف کې دانيت وکړنو هغه نفل ګرځي سنت نه اداء کيږي مسنون اعتکاف صرف هغه دی په کوم کې چې څه استثناء نه وي کړل شوي په دي کې وتل مفسد دي البته دقضاء حاجت دضرورت لپاره په وتلو يې وليدل چې په لاره کې دجنازي لمونځ شروع کيږي نوپه دي کې شرکت کولی شي له لمانځه څخه وړاندي انتظاراوله لمانځه څخه وروسته هلته پاته کيدل جائزنه دی

همداشان دقضاء حاجت لپاره په خپله لاره کې په تلوتلوسره دمریض عیادت کولی شي دعیادت مریض اوجنازي دلمانځه لپاره لاري ځخه اوښتل یاپاته کیدل جائز نه دي. (احسن الفتاوی: ۵۰۹/۴)

(۶۹)نوکه له دي ضرورتونه ځخه بغیرمعتکف له مسجدځخه دلږوخت لپاره ووتی نودامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدده اعتکاف فاسدیږي ځکه چې لبث فی المسجد د اعتکاف رکن دی اوله مسجد ځخه وتل ددي ضددی اوشی دخپل ضدپه تحقق سره فوت کیږي ،لهذا په خروج عن المسجدسره اعتکاف فوت کیږي خواه که خروج قلیل وي اویاکثیروي. دصاحبینوپه نزدچې کله له نصف ورځې ځخه زیات بلاعذرله مسجدځخه دباندي پاته نشي اعتکاف نه فاسدیږي ځکه چې دلږوخت لپاره له مسجدځخه وتل دضرورت له کبله معاف دي اوبات معاف نه دی ،په قلیل اوکثیرکې حدفاصل له نیمې ورځې ځخه زائد دی.

ف:دامام ابوحنیفة رحمه الله قول راجح دی کمافی الدرالمختار:فلوخرج ولوناسیاساعة بلاعذرفسدفیقضیه الااذاافسده بالردة واعتبراا کثرالنهارقالواهوالاستحسان وبحث فیه الکمال،وقال ابن عابدین:وقداطال(الکمال)فی تحقیق ذالک کماهودابه فی التحقیق رحمه الله تعالی وبه علم انه لم یسلم کونه استحساناحتی یکون ممارجح فیه القیاس علی الاستحسان کماافاده رحمتی فافهم (الدرالمختارمع الشامیة: ۱۳۵/۲)

ف:په عشره اخیره رمضان کې په مسنون اعتکاف کې صرف دهغې ورځې قضاء واجب ده په کومه ورځ چې اعتکاف فاسدشو،له فسادځخه وروسته دا اعتکاف نفل شودیوي ورځې قضاء که یې خوښه شوه په رمضان کې دي وکړي اویادي له رمضان ځخه وروسته له نفل روژي سره وکړي که اعتکاف په ورځ کې فاسدشوی وو نوصرف دورځې قضاء واجب ده اوکه په شپه کې فاسدشوی وو نودشپې اوورځې دواړوقضاء واجب ده. (احسن الفتاوی: ۵۱۴/۴)

(۷۰)قوله اوکله وشربه الخ ای جازاکله وشربه ....فیه ای فی المسجد،یعنی دمعتکف خورک ځښک ،خوب اواخیستل خرڅول په مسجدکې جائزدي ځکه چې په دي کارونوکې څه داسې شی نشته کوم چې له مسجدسره منافی وي اوپه خپله نبی کریم ﷺ داعتکاف په حالت کې په مسجدکې خوراک کاوو لهذاددي امورولپاره له مسجدځخه دوتلوضرورت نشته ،هوکه دخوراک له کوره ځخه دراوړلوانتظام نه وي نودخوراک دراوړلولپاره له مسجدځخه وتلی شي ځکه چې اوس ضرورت دی ،همداشان کله انسان پخپله خریدوفروش ته محتاج ګرځي بل داسې څوک نشي پیداکولی کوم چې داضرورت پوره کړي لهذاددي ضرورت پیش نظرمعتکف ته دخریدوفروش هم اجازت ورکړل شوی دی،هومبیع مسجدته رواړل مکروه دي ځکه چې مسجدخالص دالله تعالی لپاره دی مسجدته دمبیع وغیره په راوړلوسره دی په حقوق العبادسره مشغولول لازمیږي کوم چې جائزنه دی.

ف:دابایدیادوساتل شي چې دمعتکف لپاره په مسجدکې دضرورت شی دخپل ځان یاخپل اولادلپاره اخیستل جائزدي باقی دتجارت لپاره خریدوفروخت کول مکروه دي ځکه چې مسجدصرف دالله تعالی دعبادت لپاره خاص دی نومسجدپه اموردنیاسره مشغولول مناسب نه دی کمافی شرح التنویر:(وعقداحتاج الیه )لنفسه اوعیاله فلولتجارة کره،قال ابن عابدین:(قوله فلولتجارة کره)ای وان لم یحضرالسلعة واختاره قاضیخان ورجحه الزیلعی لانه منقطع الی الله تعالی فلاینبغی له ان یشتغل باموالدنیا(الدرالمختارمع ردالمحتار: ۱۳۶/۲)

(۷۱)وَالصَّمْتُ (۷۲)وَالتَّكَلُّمُ إِلَّا بِخَيْرٍ (۷۳)وَيَحْرُمُ الْوَطْءُ وَدَوَاعِيهِ (۷۴)وَبَطَلَ بِوَطْئِهِ (۷۵)وَلَزِمَهُ اللَّيَالِي أَيْضًا

نذر اعتکاف ایام ولیالیها نذر بو منهن

ترجمه: او (مکروه ده) خاموش اوسیدل، او خبري کول مګر د خیر خبري، او حرام ده وطی او دواعی دوطی، او اعتکاف باطلیږي په وطی سره، او لازمیږي د شپو اعتکاف هم دورځو داعتکاف په نذرکولو سره او ددوو شپو اعتکاف ددوو ورځو په نذرکولو سره.

تشریح: (۷۱) قوله والصمت ای کره الصمت الذی یعتقده قربة، یعني دمعتکف لپاره دعبادت په ډول سره خاموش اوسیدل مکروه دي (یعنی چې خاموشي عبادت وګڼي) ځکه چې دخاموشۍ روژه په مخکینیو شریعتونو کې وه زموږ په شریعت کې نشته او که خاموشي عبادت ونه ګڼي نو مکروه نه ده ﴿لقوله ﷺ من صمت نجا﴾ (څوک چې خاموش شو هغه خلاصی ومونده)، باقی له شرکي خبرو څخه خاموش پاته کیدل واجب دي دمعتکف او غیر معتکف دواړو لپاره.

(۷۲) قوله والتکلم الابخیرای وکره التکلم فی المسجد الابخیر، یعني داعتکاف په حال کې په مسجد کې بلاضرورت خبري کول هم مکروه دي، هو دضرورت په قدر خبري کول مثلا درس تدریس، وعظ او قصص انبیاو غیره بیانولی شي په دي کې څه کراهت نشته ځکه چې نبی کریم ﷺ داعتکاف په حال کې له خلګو سره دضرورت خبري کولی.

(۷۳) یعنی دمعتکف لپاره بحالت اعتکاف جماع کول حرام ده لقوله تعالی ﴿وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ﴾ (مه کوی مباشرت له ښځو سره په داسي حال کې چې تاسي په مساجدو کې معتکف یاست). همداشان دمعتکف لپاره دواعی جماع هم ممنوع دي ځکه چې جماع ممنوع ده نو ددي دوعي به هم ممنوع وي لهذا که په مچه اخیستلو یا مس کولو سره انزال وشو نو دده اعتکاف فاسدیږي او پرده قضاء لازمه ده.

ف: دااشکال کیدای شي چې په مسجد کې به دجماع نوبت څرنګه راشي؟ ځواب: ددي صورت په دي ډول سره ممکن دی چې معتکف دحاجت انساني لپاره له مسجد څخه راووځي او جماع وکړي نو دي لره داویل صحیح دي چې ده داعتکاف په حالت کې جماع وکړه ځکه چې دضرورت لپاره په وتلو سره له ده څخه داعتکاف نوم نه زائلیږي.

(۷۴) یعنی که معتکف داعتکاف په حالت کې جماع وکړه نو دده اعتکاف باطل شو خواه که انزال وي او که نه وي ځکه چې دجماع په اعتکاف کې ممنوع والی په نص سره ثابت ده لکه چې په حالت احرام کې ده نو لکه څرنګه چې په جماع سره احرام باطلیږي همداشان په جماع سره اعتکاف هم باطلیږي، خواه که په ورځ کې جماع وکړي او که په شپه کې ځکه چې شپه هم داعتکاف محل ده لهذا کوم شی چې په ورځ کې داعتکاف مبطل دی هغه په شپه کې هم مبطل دی.

ف: او جماع عامه ده خواه که عمدا وي یا په هیره سره وي، دامام شافعی رحمه الله په نزد په هیره سره جماع مفسده نه ده، داحنافو په نزد نسیان په دي وجه سره عذر نه دی چې حالت اعتکاف، یعنی په مسجد کې پاته کیدل هروخت یاددهانی کوي چې ته په اعتکاف کې یې له مفسدات اعتکاف څنه ځان ساته لهذا نسیان عذر نه دی کمافی الهندیة: والجماع عمدا اوناسیالیلا اونهارا یفسد الاعتکاف انزل اولم ینزل وماسواه یفسد اذا انزل وان لم ینزل لایفسد (هندیة: ۱/۲۱۳)

(۷۵)يعنى كه چاد څوورځوا عتكاف پرخان لازم كړمثلا ويې ويل :چې دالله تعالى لپاره پرمادلسو ورځوا عتكاف لازم دى،نودد ي شپوا عتكاف هم لازميږي ،همدا شان كه يې دووورځو اعتكاف پرځان لازم كړنوله دي ورځوسره ددووشپو اعتكاف هم ضروري دى ځكه چې قاعده داده چې دجمع په صيغه سره دورځوذكركول ددوئ مقابل شپوته هم شامل وي اودجمع په صيغه سره دلياليې ذكركول ددو ئ مقابل ورځوته هم شامل وي قال الله تعالى ﴿ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ إِلَّا رَمْزًا ﴾ وقال تعالى ﴿ثَلَاثَ لَيَالٍ سَوِيًّا ﴾ وجه استدلال داده چې دلته واقعه يوه ده يوځل دا په لفظ ،ايام ،سره تعبيرشوه اودوهم ځل په لفظ ،ليالى، سره تعبيرشوه نومعلومه شوه چې په دواړوكې ديوه ذكردجمع په لفظ سره دوهم ته هم شامل دى .

## كِتَابُ الْحَجِّ

داكتاب دحج په بيان كې دى

دكتاب الحج له ماقبل سرمناسبت دادى چې عبادت پردري قسمه دي ./نمبر۱. محض بدني عبادات لكه لمونځ./نمبر۲.محض مالي عبادات لكه زكوة وغيره./نمبر۳.له دواړوڅخه مركب لكه حج .كله چې مصنف رحمه الله له اولنيودوڅخه فارغ شونوپه دريم يې شروع وكړه .

لفظ حج په فتح دحاء اوكسره دحاء دواړوسره مستعمل دى په لغت كې مطلقاقصدته ويل كيږي. دځينوپه نزددكوم معظم لورته قصدكولوته حج ويل كيږي اوپه اصطلاح دشرع كې زيارة مكان مخصوص فى زمان مخصوص بفعل مخصوص (يعنى په زمان مخصوص كې په مخصوص فعل سره دمكان مخصوص زيارت كولوته حج ويل كيږي ).

**سوال** :مصنف رحمه الله په عنوان كې حج ذكركړى حال داچې په تفصيل كې دعمرې بيان هم كړى دى نوعنوان تفصيل ته شامل نه دى؟

**ځواب** :ددي وجه يې دحج اشرف والى اوفرض والى بيان كړى دى ياداسې ووايه چې حج پردوه قسمه دى ،حج الاكبركوم ته چې حج الاسلام ويل كيږي ،اوحج الاصغركوم ته چې عمره ويل كيږي ،نوعنوان دواړوته شامل دى .

**ځوفائدي** :(۱)صحيح داده چې حج صرف پردى ملت بيضاء واجب دى ،نبى كريم ﷺ له هجرة څخه وړاندي حجونه كړي دي مگردهغوتعدادمعلوم نه دى اوفرض حج نبى كريم ﷺ په لسم هجرى كال اداء كړى دى.(۲)حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه په نهم هجرى كال باندى حج اداء كړى دى اوپه نهم هجرى كال باندى حج فرض شوى دى .(۳)په حج كې دري شيان فرض دي ،احرام ،وقوف عرفه اوطواف زيارت ، اوپنځه شيان واجب دي ،وقوف مزدلفه ،رمى الجمار،حلق ياقصر،سعى بين الصفاوالمروة اوطواف صدر،مگرواجبات حج ځينوحضراتوترپنځه ديرشو شماركړي دي ،باقى له دي څخه علاوه سنن اواداب دي .

**الحكمة** :شرع الحج للمسلمين ليجتمعوا الى صعيدواحدعلى اختلاف اجناسهم ومذاهبهم وبعدبلادهم واقطارهم كماقال الله تعالى فى كتابه العزيز (واذن فى الناس بالحج ان ياتوك رجالاوعلى كل ضامر ياتين من كل فج عميق )فاذااجتمعوامن اماكنهم الشاسعة حصل بينهم التعارف

والعالم وعرف العربي الهندي، والتركي الصيني، والمصري الشامي، وهلم جرا حتى الهم بهذا الاجتماع وهذا التعارف كالاخوة الذين هم من اب واحد وام واحد لرابطة الدين التي جعلتهم كذالك بلا فرق بين قبيلة واخرى او عنصر وآخر. (حكمة التشريع)

(١) هو زيارة مكان مخصوص في زمان مخصوص بفعل مخصوص (٢) فرض مرة على الفور (٣) بشرط حرية وبلوغ وعقل وصحة (٤) والقدرة زاد وراحلة فضلت عن مسكنه وعما لا بد منه ونفقة ذهابه وإيابه وعياله وأمن طريق (٥) ومحرم او زوج لامرأة في سفر (٦) فلو أحرم الصبي او عبد فبلغ او عتق فمضى لم يجز عن فرضه

**ترجمه**: حج زيارت كول دي د مخصوص مكان په مخصوصه زمانه كې په مخصوص فعل سره، فرض كړل شوى دى يو ځل په فوري ډول سره، ازادي اوبلوغ اوعقل اوصحة اواسلام، او په زادراه او په سورلى باندي. دقدرت درلودلو په شرط سره كوم چې زائد وي دده له مسكن اوضروري شيانو څخه او په شرط دتگ راتگ اودعيال د نفقې سره اودلاري له امن سره، اودمحرم ياخاوند په شرط سره دښځې لپاره په سفر كې، نو كه احرام وتاړه هلك ياغلام بيابالغ شو يا ازاد كړل شو اوده احكام پرځاى كړو نو كفايت نه كوي له فرضې حج څخه.

**تشريح**: (١) په مذكوره عبارت كې مصنف ﷫ دحج اصطلاحي تعريف بيان كړى دى لكه څرنگه چې په شروع كې مو بيان كړ، (٢) حج په ژوند كې يو ځل فرض دى اودامام ابويوسف ﷫ په نزد على الفور فرض دى، دفرضيت دليل يې دبارى تعالى ارشاد دى ﴿ وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا ﴾ (يعنى دالله لپاره پرخلكو فرض دى دبيت الله حج كول څوك چې دلاري استطاعت ولري)، اوديو ځل فرضيت دليل داقرع بن حابس ﷛ حديث دى چې نبى كريم ﷺ وفرمايل چې حج يو ځل فرض دى له يو ځل څخه زيات تطوع دى، اودعلى الفور فرضيت دليل يې دادى چې په مخصوص وخت يعنى اشهر حج پسې خاص دى له اشهر حج څخه وروسته به باقي كال دحج داداء كولو وخت نه دى اودراتلونكى پوري په انتظار كولو كې دمرگ راتلو امكان د يل لهذا احتياط په دې كې دى چې دحج وخت تنگ كړل شي اوداو ويل شي چې په كوم كال دحج شرائط جمع شي په هغه كال حج فرض دى.

**ف**: حال دا چې امام محمد ﷫ فرمايي چې حج على التراخي فرض دى دامام محمد ﷫ دليل دادى چې حج دانسان دټول عمر وظيفه ده په ټول عمر كې چې څه وخت وغواړي اداء دي كړي لكه چې دلمانځه لپاره دلمانځه وخت دي، همدا وجه ده چې په ژوند كې څه وخت هم اداء كوي نو داداء نيت به كوي دقضاء نيت به نه كوي ځكه چې قضاء شوى نه دى، دامام ابوحنيفه ﷫ هم اصح قول دامام ابويوسف ﷫ په شان دى اوهمدا راجح دى كمافي شرح التنوير: الحج فرض مرة على الفور في العام الاول عندالثاني واصح الروايتين عن الامام ومالك واحمد (الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ٢/١٥٠) خلاصه دا چې دمفتى به قول مطابق دحج اداء كول له وجوب سره فوراً واجب ده تر يوه دوه كاله پوري تاخير كول مكروه تحريمي ده له دي څخه زائد انسان مردود الشهارة گرځوي البته كله چې يې هم اداء كړي نو دتاخير په وجه سره لازمه شوي گناه ختميږي ليكن كه له حج اداء كولو څخه وړاندي وفات شو نو گناه گار به وي كمافي الشامية: وفي القهستاني فيأثم عندالشيخين بالتاخير الى غيره بلا عذر الا اذا ادى ولو في عمره فانه رافع للاثم بلا خلاف (ردالمحتار: ٢/١٥٢)

**ف**:داسوال كيداى شي چي كه حج على الفورفرض واى نوحج خوپه سنه نهمه هجرى كي فرض شوى وو بيانبى كريم ﷺ تريوه كاله پوري ولى دحج اداء مؤخركړي وه ؟ځواب :ممكنه ده چي په سنه نهمه هجري كي دي له اشهرحج څخه وروسته حج فرض شوى وي اوصحيح هم داده ځكه چي حج دعام الوفودپه اواخروكي په سنه نهمه هجري كي فرض شوى وو لهذانبى كريم ﷺ له فرضيت حج وروسته دحج په اداء كولوكي تأخيرنه ده كړى .

**ف**:كه كوم كس دعمري لپاره مكي مكرمي ته ولاړى نوكه له شوال شروع كيدلو څخه وړاندي واپس راغى نوحج نه ده فرض شوى البته كه شوال دوري شروع شواوله ده سره دحج مصارف هم وو نوحج فرض كيږي،كه دحكومت له طرفه دحج تروخت پوري دپاته كيدلواجازه نه وي نوپه فرضيت حج كي اختلاف دى راجع داده چي پرده حج بدل كول فرض دى له مكي مكرمي څخه دي حج بدل وكړي په بعدكي كه يي خپله استطاعت پيداكړنودوهم ځل دي حج وكړي .(احسن الفتاوى:۵۲۹/۴)

(۳)دحج دفرضيت لپاره مختلف قسمه شرائط دي بعض شرائط وجوب دي ،بعض شرائط اداء دي اوبعض شرائط صحة دي مصنف رحمه الله ددوئ ترمنځ تميزنه ده كړى اوځيني يي ترك كړي دي ، (۱)**شرائط وجوب**.شرائط وجوب دادي ،حج كونكى به عاقل وي ،بالغ به وي ،مسلمان به وي ،ازادبه وي استطاعت به لري ،دحج په فرضيت به علم لري ،(۲)**شرائط اداء** ،اوشرائط اداء دادي ،روغ به وي ، موانع حسيه به نه وي ،لاره به په امن وي ،دښځي په حق كي به يوقسم عدة نه وي، اوله ښځي سره به خاونديا كوم محرم وي ،(۳)**شرائط صحت**: ،شروط صحت دادي ،احرام به تړي ،اشهرحج به وي ،مكان مخصوص به وي.

مصنف رحمه الله لانديني شرائط بيان كړي دي ،اول شرط حج كونكى به ازادوي پرغلام حج نه ده فرض ځكه چي حج غالبابغيرله مال څخه نه شي اداء كيدلى حال داچي غلام هيڅ مال هم نه لري ،دوهم شرط بالغ به وي په كوچنى حج نه ده فرض ځكه چي له ده څخه عبادات ساقط دي ،دريم شرط عاقل به وي پرمجنون باندي حج فرض نه ده ځكه چي مجنون مرفوع القلم دى لهذاپرده حج فرض نه دى. څلورم شرط روغ به وي لهذاپه داسي سپين بږيري چي په سورلى باندي نسي كښينستلى .اوپه ناروغ اوپه مفلوج اوپرړانده باندي حج فرض نه دى ځكه چي په عباداتوكي عجزسقوط عبادات مؤثر دى ترڅوچي عذرقائم وي ،اوپه دي خلكوداامام ابوحنيفه رحمه الله دمشهورروايت مطابق وصيت كول هم لازم نه دى په دي شرط چي له عذرڅخه وړاندي به يي دحج زمانه نه وي موندلى ليكن په مذكوره ټولوصورتونوكي احتياط دادى چي داخلك دحج بدل وصيت وكړي .

**ف**:همدادصاحبينومذهب دى اودي ته دصاحب فتح القديروغيررجحان دى ،لماقال ابن عابدين :فلايجب على مقعدومفلوج وشيخ كبيرلايثبت على الراحلة بنفسه واعمى وان وجدقائداومحبوس وخائف من سلطان لابانفسهم ولابالنيابة فى ظاهرالمذهب عن الامام وهورواية عنهماوظاهرالرواية عنهماوجوب الاحجاج عليهم ويجزيهم ان دام العمروان زال اعادوابانفسهم وظاهرالتحفة اختيار قولهماوكذاالاسبيجابى وقواه فى الفتح ومشى على ان الصحة من شرائط وجوب الاداء (ردالمحتار:۱۵۳/۲)،پنځم شرط مسلمان به وي پركافرحج فرض نه دى ځكه چي كافرفى حق الاداء په فروع الايمان سره مخاطب نه دى.

(۴)شپږم شرط دادی چې په سورلی اوپه لاره کې دخوراک څښک اوتلوراتلوپه نوروخرڅوبه قدرت لري کوم چې داوسیدلوله کوراونورضروریاتوڅخه زائدوي ځکه چې داشیان دده په حاجت اصلیه سره مشغول دي ،اودده دبچیانو (دکوموچې خرڅه پرده واجب ده )له خرڅې څخه به زائدوي ځکه چې حق عبدمقدم دی پرحقوق الله باندي ،اوم شرط دادی چې لاربه پرامن وي ځکه چې استطاعت بغیرله امن څخه نه وي حال داچې دفرضیت حج لپاره استطاعت شرط دی .

ف:که چاداسې کوروي چې په هغه کې نه اوسیږي اوچاته يې په کرایه هم نه وي ورکړی یادده غلام وي په کوم چې دی خدمت نه کوي یاسامان وي کوم چې دی نه استعمالوي نوپردي شخص واجب ده چې داشیان خرڅ کړي اوددوئ په قیمت باندي حج وکړي .

ف:زرعي جائدادونه اومکانات وغیره چې له حوائج اصلیه څخه زائدوي نودهغوخرڅول اوفوراحج کول فرض دی اویورپه حاجت اصلیه کې نه دي بلکه له دري جوړوجاموڅخه زائدلباس هم په ضرورت کې داخل نه دی ،نن سبا انجونوته په جهیز کې له ضرورت څخه زائددومره سامان ورکول کیږي چې پردوئ حج فرضیږي که په دي کال نغدی روپی نه وي نوسامان دي خرڅ کړي اوحج کول فرض دي تاخیرکول گناه ده. (احسن الفتاوی : ۵۲۶/۴)

ف:په مکه مکرمه اوددي شاوخوااوسیدونکولپاره دسورلی شرط نشته ځکه چې په بلاسورلی په حج کولوکې مشقت نشته ،دحج لپاره تلل دسورلی دنه شرط والی په حق کې ددوئ لپاره دسعی الی الجمعة په شان ده کمافي شرح التنویر: لالمکی یستطیع المشی لشبهه بالسعی للجمعة (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۱۵۳/۲)

(۵)قوله ومحرم اوزوج لامرأته ای بشرط مرافقة محرم اوزوج لامرأته ،دښځې لپاره که څه هم سپین سری وي یوزیات شرط داهم دی چې له دي سره به عاقل بالغ اوغیرفاسق محرم یاخاوندوي په دي شرط چې هغه به له مکې مکرمې څخه ددري ورځویاله دي څخه پرزیاته فاصله وي ،بغیرله محرم یاخاوندڅخه له دومره فاصلې څخه دښځې حج ته تلل مکروه تحریمي ده ﴿ لقوله ﷺ لاتحجن امراة الاومعهامحرم ﴾ (یعنی بالکل دي کومه ښځه حج ته نه ځي مگرپه دي حال کې چې له دي سره کوم محرم وي ).

ف:داشرط دی چې محرم به فاسق ،مجوسي ،هلک یالیونی نه وي ځکه چې له دوئ څخه دحفاظت غرض نه حاصلیږي کمافي شرح التنویر: (بالغ عاقل)......(غیرمجوسی ولافاسق)لعدم حفظهما(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۱۵۸/۲)

## دحج په سفرکې دښځې دخاوندوفات کیدل

ف:که په سفرحج یاعمره کې دیوي ښځې خاوندوفات شونودعدة حال له عباداتواوافعال حج څخه مانع نه دی بلکه له سفرڅخه مانع دی ،په همدي پس منظرکې حنفي فقهاؤددي ښځې لپاره لاندي احکام بیان کړي دي .(الف)که دد ي کورله مسافت سفرڅخه په لږلیري والی کې وو نوکورته دي واپس شي . (ب)که مکه له مسافت سفرڅخه په لیږلیري والی کې وه نودحج سفردي جاري وساتي .(ج)که دواړو طرفونوته دمسافت سفرفاصله وه اوپه شهرکې ورودوو یعنی په داسې ځای کې ددي عدة شروع شوی وو ،چیرته چې ددی پاته

كيدل اوقيام كول ممكن وو اومحرم ورسره نه وو نوپه هغه ځاى كې دي عدة تيره كړي اودسفرسلسله دې منقطع كړي .(د)اوكه محرم ورسره وو نودصاحبينوپه نزددي سفرحج جاري وساتې اودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددي دسفرسلسله ختمه كړي .

په موجوده زمانه دخپل ملک له حدودوڅخه له وتلووروسته له مكې څخه وړاندي دقانوني مشكلاتوپه وجه سره نه قيام ممكن وي اونه له سفرڅخه واپسي اسانه وي ،بيادحج په قافله كې په ډيرتعدادسره ښځې وي ،له دوئ سره ديوي ښځې په اوسيدلوكې دفتنې مواقع كم وي له دي وجهې كه له خپل ملک څخه له وتلووروسته خاوندوفات شونودحج دسفردمكمل كولوبايدګنجائش وي ،اودامام شافعي رحمه الله رأيه مختارول په كاردي چې كه په رفقاء سفركې څه نوري ښځې هم وي نوښځه بغيرله محرم څخه له دوئ سره سفرحج كولى شې. (جديدفقهى مسائل ۲: ۱۸۰)

(۶)كه كوم نابالغ هلک ياغلام احرام وتاړه بياهغه هلک بالغ شوياغلام ازادشواوپه همدي احرام سره يې حج پوره كړنو ددي حج په اداء كولوسره دده له ذمې څخه حج فرض نه ساقطيږي ځكه چې په دوئ كې هريوه دااحرام دنفلي حج لپاره تړلى وو لهذاپه دي سره فرض حج نه شې اداء كيدلى .

**ف**:هونابالغ كه له وقوف عرفه څخه وړاندي بنيت فرض حج داحرام تجديدوكړنوفرض حج اداء كيږي ځكه چې مخكنى احرام دده په حق كې دعدم اهليت په وجه سره لازم نه وو ،ليكن كه غلام په دي وخت كې تجديداحرام وكړنوهم دااحرام له فرض حج څخه كفايت نه كوي ځكه چې دغلام همدااحرام په شروع كولوسره لازم شوى دى لهذااوس له دې څخه وتل ممكن نه دي. (الدرالمختارمع الشامية ۲: ۱۵۹)

**الالغاز**:اى فقيريلزمه الاستقراض للحج؟

**فقل**:من كان غنياوجب عليه لم استهلكه (الاشباه والنظائر)

## داحرام مواقيت

(۷)وَمَوَاقِيتُ الإِحْرَامِ ذُو الحُلَيْفَةِ وَذَاتُ عِرْقٍ (۸) وَالجُحْفَةُ وَقَرْنٌ وَيَلَمْلَمُ لِأَهْلِهَا وَلِمَنْ مَرَّ بِهَا (۹) وَصَحَّ تَقْدِيمُهُ عَلَيْهَا (۱۰) لَا عَكْسُهُ (۱۱) وَلِدَاخِلِهَا الحِلُّ (۱۲) وَلِلْمَكِّيِّ الحَرَمُ لِلْحَجِّ وَالحِلُّ لِلْعُمْرَةِ

**ترجمه**:اوداحرام مواقيت ذوالحليفه اوذات عرق،اوجحفه اوقرن اويلملم دي ددوئ داوسيدونكولپاره اوڅوک چې پردوئ تيريږي ،اوصحيح دى احرام مقدم كول په دي مواقيتوباندي ،نه ددي عكس ،او ددوئ داوسيدونكولپاره حل دى، اودمكي لپاره حرم دى دحج لپاره اوحل دى دعمرې لپاره .

**تشريح**:له دى ځايه څخه هغه مواضع بيانوى په كوموچې دخارجى شخص لپاره بغيرله احرام څخه دمكې مكرمې په اراده سره تيريدل جائزنه دي اكرداافعال حج لپاره نه وي بلكه دتجارت وغيره لپاره وي،مواقيت دميقات جمع ده دمتعين وخت يامتعين مكان په معنى سره ،دلته هغه مواضع مراددي چيرته چې حجاج كرام احرام تړي اوداپنځه ځايونه دي .

ف: خلک پردري قسمه دي څکه نو میقاتونه هم پردري قسمه دي (۱)آفاقي :کوم چې په متن کې له مذکوره پنځو میقاتونو (یعنی ذوالحلیفه ،ذات عرق ،جحفه ،قرن اویلملم )څخه باهر(یعنی دباندي ) اوسیږي ددوئ لپاره داپنځه میقاتونه دي. (۲)حِلي :کوم چې دمذکوره پنځومیقاتونواوحرم په منځ کې اوسیږي ددوئ لپاره میقات حل دی .(۳)حرمي :کوم چې په حدودحرم کې اوسیږي داخلک که حج کول وغواړي نواحرام به له حل څخه تړي اوکه عمره کول وغواړي نوله حرم څخه به احرام تړي.

(۷)بیاد آفاقیانو دمختلفو علاقولپاره مختلف میقاتونه دي دمدینې والوته ذوالحلیفه (بفتح الحاء واللام )دی خلک دي ته ابارعلي وایي کوم چې له مدینې منورې څخه په څه کم پنځه میله کې واقع دی اوله مکې مکرمې څخه دلسوشپوپه مسافت دی ،اودعراق ،خراسان ،ماوراء النهراواهل مشرق لپاره ،ذات عرق (بکسر العین وسکون الراء )دی کوم چې له مکې مکرمې څخه په دري مراحله یعنی شپږ دیرش میله کې واقع دی.

(۸)دشام ،مصروغیره لپاره جحفه (بضم الجیم وسکون الحاء )دی کوم چې له مکې مکرمې څخه په دري مراحله یعنی شپږدیرش میله دی ،داهل نجدلپاره یلملم (بفتح الیاء ولامین وسکون المیم )دی دیوه غره نوم دی کوم چې له مکې مکرمې څخه په دوه مراحله کې واقع دی په همدي شان سره نبی کریم ﷺ دامواقیت ددي خلکولپاره مقررفرمایلي دي ،اومذکوره بالامقامات لکه څرنګه چې ددي خلکولپاره میقاتونه دي کوم چې هلته اوسیږي همداشان دهغوخلکولپاره هم دي کوم چې په دي مقاماتوباندي مکې مکرمې ته تیریږي.

(۹)یعنی که له مذکوره بالامیقاتونو څخه وړاندي چااحرام وتاړه نودافعل جائزدی بلکه افضل دی لقوله تعالی﴿ وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ ﴾ (یعنی دالله ﷻ لپاره حج اوعمره پوره کړئ )،اودحج اوعمري دپوره کولومطلب دادی چې ددوئ احرام له خپلوکورنو څخه په تړلوووځي لیکن شرط دادی چې دخلاف احرام کارونودکیدلواندیښنه نه وي.

(۱۰)قوله ولاعکسه یعنی تاخیرالاحرام عن هذه المواقیت ،یعنی دمذکوره بالاصورت عکس جائزنه دی یعنی چې افاقي شخص ددخول حرم په اراده سره له مذکوره بالامقاماتوڅخه دمکې مکرمې طرف ته تیرشي اوبیااحرام وتړي نوداجائزنه دی څکه چې له حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چې نبی کریم ﷺ وفرمایل لایدخل احدمکة الاباحرام (له احرام څخه بغیردي څوک مکې ته نه داخلیږي ).

ف: البته کوم شخص چې دکوم حاجت لپاره مکې ته دداخلیدلواراده لري نودده لپاره علماؤداحیله بیان فرمایلې ده چې هغه دي په حل کې دیوځای قصدوکړي له میقات څخه دي تیرشي مثلاً دخلیص یاجده اراده دي وکړي نودده لپاره دخول حل بلااحرام جائزدی بیاچې کله هلته ولاړی نواوس دی اهل حل ګڼل کیږي لهذااوس دده لپاره بلااحرامه مکې مکرمې ته داخلیدل جائزدي په دي شرط چې دکوم نسک اراده یې نه وي کمافي شرح التنویر :اما لو قصدموضعامن الحل کخلیص وجدة حل له مجاوزته بلااحرام فاذاحل به التحق باهله فله دخول مکة بلااحرام وهوالحیلة لمریدذالک.(ردالمحتار:۲/۱۶۷)

## دموټر چلونکي د ټک راټک حکم

ف: حضرت مولانا سيف الله خالد رحماني مد ظله د پورته ذکر شوي صورت او حيلې په باره کې ليکي، په دې حيله کې چې (د ټيکسي ډرائيور، تاجرانو وغيره) لپاره کوم تکلف دی هغه خو ښکاره دی، له دې څخه علاوه خيال دادی چې فقهاؤ چې په کوم موځايونو کې د حيلې رهنمائي کړي وي هلته د کوم سخت ضرورت په وجه سره په عارضي ډول د هغه عمل د کولو ګنجائش فراهم کول مقصود دي، اوس هره ورځ راتلونکو تاجرانو ته مشوره ورکول چې هغوئ دي هيمشه له دې حيلې څخه کار واخلي او حيله دې مستقل عمل جوړ کړي، صحيح نه ښکاريږي ځکه چې په دې شان سره دين د کوچنيانو لوبه جوړيدل او د شريعت دا وامر او نواهيو په حق کې د بې حسي او بې احترامي د پيدا کيدلو خطره ده.

له دې وجې څخه د دې حقير دا خيال دی چې په دې مسئله کې د ائمه ثلاثه پر قول فتوی ورکول په کاردي او په حقيقت کې دا له يوې فقهې څخه بلې فقهې ته عدول نه دی ځکه چې عدول هغه وخت وي چې کله د دليل او برهان اختلاف وي، دا اختلاف د زمان په بناء د احکامو اختلاف دی، ولاينکر تغير الاحکام بتغير الزمان. (جديد فقهي مسائل: ۱۶۳/۲)

ف: نن صبا به د هوايي جهازو الا چيرته احرام تړي؟ په دې باره کې حضرت مولانا مفتي محمد شفيع صاحب نور الله مرقده ليکي: نن صباله ممالک مشرقيه څخه د راتلونکو حجاجو لپاره دوه لارې دي يوه هوايي، بله بحري، د هوايي جهازونو لاره عموماً دوچې پر سر براه قرن المنازل وي هوايي جهاز د قرن المنازل او ذات عرق دواړو ميقاتونو پر سر په تيريدو سره اول په حل کې داخليږي او بيا جدې ته رسيږي په دې وجه سره په هوايي سفر کې خود قرن المنازل پر سر له راتلو څخه وړاندې احرام تړل لازم وواجب دي او ځرنګه چې په هوايي جازونو کې د دې درک لګول تقريباً ناممکن دی چې څه وخت او کله به جاز د قرن المنازل په سر تيريږي ځکه نو د اهل پاکستان او هندوستان لپاره خو احتياط په دې کې دی چې په هوايي جاز کې له سپريدلو څخه وړاندې احرام وتړي که بغير له احرام تړلو څخه د هوايي جاز په ذريعه سره جدې ته ورسيدنو دده پر ذمه دم يعنې ديوه پسه قرباني واجب ده او ګناه له دې څخه علاوه ده د کوم په وجه سره چې حج ناقص ګرځي مقبوليږي نه، ډير حجاج په دې کې غفلت کوي. (جواهر الفقه: ۴۷۵/۱)

ف: البته په هوايي جاز کې تلونکې که د قرن المنازل په محاذات کې بغير له احرام څخه تيرشول او بيا جدې ته په رسيدلو يې احرام وتاړه نو د مجاوت بغير احرام ګناه خو ضرور رشته ليکن دم واجب نه دي ځکه چې د بل ميقات طرف ته وتلی دی او له هغه ځای څخه احرام تړي. (فتاوی عثماني: ۲۱۰/۲) کذافي البدائع: ولوعادالی ميقات اخر غير الذی جاوزه قبل ان يفعل شيئا من افعال الحج سقط عنه الدم. (بدائع الصنائع: ۱۶۵/۲)

(۱۱) کوم خلک چې له مذکوره بالا ميقاتونو څخه هغه طرف ته او له مکې مکرمې څخه دې طرف ته اوسيږي (يعنې د حرم او مذکوره ميقاتونو په منځ کې اوسيږي) نو د دوئ لپاره د احرام تړلو ميقات حل (حل بکسر الحاء څخه مراد د حرم او مذکوره بالا مواقيت منځنې علاقه ده) دی، دا خلک د خپل کوم حاجت لپاره بغير له احرام څخه هم مکې مکرمې ته د خليدای شي ځکه چې دوئ ته په کثرت سره د ټګ راټګ ضرورت پيښيږي نو که پر دوئ باندې هم احرام لازم کړل شي نو په دې کې د دوئ لپاره حرج دی او حرج شرعاً مدفوع دی

البته که داخلک دعمري داحکامو، یاحج اداء کول وغواړي نوددوئ لپاره بغیرله احرام څخه دخول مکه جائزنه دی څکه چې داکله کله وي.

(۱۲)کوم خلک چې په مکه مکرمه کې دننه اوسیږي هغوئ که حج اداء کوي نودهغوئ لپاره میقات حرم دی اوکه عمره اداء کوي نودهغوئ لپاره میقات حل ده څکه چې نبی کریم دي خلکوته همدا امرکاوو، همدارازحج په عرفات کې اداء کیږي اوعرفات په حل کې واقع دی نوله حرم څخه په احرام ترلو کې یوقسم سفرکونکې ګرځي، اوعمره په حرم کې اداء کیږي نودسفردتحقق لپاره بایداحرام له حل څخه وتړل شي.

ف: دحرم حدودڅه په دي ډول دي چې دمدینې منورې په لاره درې میله دي اودیمن اوعراق اوطائف په لاره اووه میله دي اودجدې په لاره باندې لس اوله جعرانه څخه نهه میله دي کمافي شرح التنویر: ونظم حدودالحرم ابن الملقن فقال: وللحرم التحدید من ارض طیبة: ثلاثة امیال اذارمت اتقانه: وسبعة امیال عراق وطائف، وجدة عشرثم تسع جعرانة: (ردالمحتار: ۲/ ۱۶۹)

## بَابُ الْإِحْرَامِ

### داباب داحرام په بیان کې دی

کله چې مصنف رحمه الله دهغومواقیتوله بیان څخه فارغ شوله کوموڅخه چې بغیراحرام تیریدل جائزنه دي نواوس مناسبه ده چې احرام ذکرکړي. احرام په حج کې داسې دی لکه په لمانځه کې تکبیرالافتتاح، اواحرام ته احرام په دې وجه وایې چې په دې سره څه مباح شیان حرامیږي، دوقوف عرفات اوطواف زیارت په شان په حج کې احرام هم فرض دی البته فرق دادی چې احرام شرط دی اووقوف عرفات اوطواف زیارت رکن دي.

ف: احرام په لغت کې په حرمت کې دداخلیدلوپه معنی سره دی اودفقه په اصطلاح کې دحج یاعمرې په نیت سره دمخصوص لباس (بې له ګنډلوڅخه لنګ اوڅادر) اغوستل، تلبیه ویل، یادحج څاروی له خپل ځان سره روانولونوم احرام دی. داحرام دصحیح والی شرط دحج یاعمرې نیت دی اورکن یې تلبیه ویل یادقربانی څاروی له ځان سره روانول دي.

ف: مصنف رحمه الله داحرام داموروپه زده کولودباعثولواوشدت اهتمام لپاره ددې باب مسائل دخطاب په صیغه سره ذکرکړي دي څکه چې داحرام داحکامودزده کولوشدیداحتیاج دی، یاپه دې وجه سره چې مصنف رحمه الله دامختصردخپل زوی لپاره لیکلی دی لهذادخطاب صیغې دده لپاره دي.

(۱۳) وَإِذَا أَرَدْتَ أَنْ تُحْرِمَ فَتَوَضَّأْ وَالْغُسْلُ أَفْضَلُ (۱۴) وَالْبَسْ إِزَارًا وَرِدَاءً جَدِيدَيْنِ أَوْ غَسِيلَيْنِ وَتَطَيَّبْ (۱۵) وَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ وَقُلِ اللَّهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ فَيَسِّرْهُ لِي وَتَقَبَّلْهُ مِنِّي (۱۶) وَلَبِّ دُبُرَ صَلَاتِكَ تَنْوِي بِهَا الْحَجَّ (۱۷) وَهِيَ لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ (۱۸) وَزِدْ فِيهَا وَلَا تَنْقُصْ

**ترجمه:** اوکله چې ته اراده وکړې چې احرام وتړې نواودس وکړه اوغسل بنه ده، اوبه تن کړه لنګ اوڅادرکه نوې وي که پریمنځل شوي اوخوشبوولګوه، اولمونځ اداء کړه دوه رکعته اووایه یاالله زه اراده کوم دحج نوته یې اسان کړې ماته او قبول یې کړې له ما څخه، اوتلبیه ووایه له لمانځه څخه وروسته دحج په نیت

کولوسره اوتلبیه داده حاضریم یاالله حاضریم حاضریم ستاهیڅ شریک نشته حاضریم بې شک ټول تعریفونه اونعمتونه تالره دي اوبادشاهي ستاده ،ستاهیڅ شریک نشته ،اواضافه کړه په دي کې اوکم والی مکروه.

**تشریح**:(۱۳)له دي ځایه مصنف رحمه الله دحج یاعمرې لپاره داحرام تړلومسنونه طریقه درشیې چې څوک داحرام تړلواراده وکړي هغه دي اول اودس وکړي مګرغسل افضل دی ځکه چې له نبی کریم ﷺ څخه داحرام لپاره غسل کول مروی دی، البته داغسل څرنګه چې دنظافت لپاره دی په دي وجه اودس هم ددغه قائم مقام کیدای شي اوڅرنګه چې په غسل سره نظافت ښه حاصلیږي ځکه غسل افضل دی ،باقی ددي غسل دنظافت لپاره کیدل دطهارت لپاره دنه کیدلوعلامه داده چې داغسل دحائضې اونفاسې لپاره هم مسنون دی حال داچې له دوئ څخه حصول طهارت متصورنه دی.

**ف**:اوڅرنګه چې په دي وخت کې کما ل تنظیف مندوب دی لهذااحرام تړونکی کس دي خپل نوکان اودبغلونواویرناف ویښتان صاف کړي اوکه دسرخریلوعادی وي نوسردي وخریي اوټول بدن دي په اشنان ،ګل خطمي یاصابون سره ښه پاک کړي کمافی شرح التنویر:(وکذایستحب)لمریدالاحرام ازالة ظفره وشاربه وعانته وحلق رأسه ان اعتاده والافیسرحه و(جماع زوجته اوجاریته لومعه ولامانع منه)کحیض (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲/۱۷۰)

(۱۴)بیادي لنګ اوڅادریعنی دوه نوي یاپریمنځل شوي جامې په تن کړي ځکه چې نبی کریم ﷺ دوه جامې (څادر اولنګ)په تن کړي وي ،البته نوي جامې په تن کول افضل دي ځکه چې په دي کې کامل نظافت حاصلیږي ولی چې تراوسه دنه استعمال په وجه سره په دوئ څه خیري اونجاست نه دی لګیدلی ،اوکه ازاراورداء نوي نه وي نوبیادي پریمنځل شوي په تن کړي ځکه چې پریمنځل شوي هم په نظافت کې نویوجاموته قریبې دي.

**ف**:له ازارڅخه مرادداسې جامه ده کومه چې له نوم څخه دزنګنونوترکښته پوري وي اوله رداء څخه مرادداسې جامه ده کومه چې پرشااوسینه باندي وي کمافی شرح التنویر:(ولبس ازار)من السرة الی الرکبة (ورداء)علی ظهره ،قال ابن عابدین (قوله علی ظهره )بیان لتفسیر الرداء قال فی البحروالرداء علی الظهروالکتفین والصدر(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲/۱۷۰)

که خوشبوموجوده وه نواستحبابادي خوشبوهم ولګوي،﴿لحدیث عائشة رضی الله عنها قالت کنت اطیب رسول الله لاحرامه قبل ان یحرم﴾(یعنی مابه نبی کریم ﷺ ته داحرام لپاره خوشبوورلګوله له احرام تړلوڅخه مخکې).

**ف**:دامام محمد رحمه الله په نزدداسې خوشبوئي لګول چې دهغې جرم اوعین له احرام څخه وروسته هم پاتې وي مکروه ده ځکه چې دخولې په راتلوسره داخوشبوبل ځای ته منتقل کیږي نوداله احرام څخه وروسته دابتداء خوشبولګولوپه څیرده ،امام محمد رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې حضرت عائشة رضی الله عنها فرمایې چې مادنبی کریم ﷺ دویښتانوپه لاره کې دنبی کریم ﷺ له احرام تړلوڅخه وروسته دخوشبوځلا ولیدله ،ظاهره ده چې حضرت عائشه رضی الله عنها دادداسې خوشبوپه باره کې وایې چې له احرام څخه وروسته دهغې جرم پاته وو نودحضرت عائشې رضی الله عنها له دي حدیث څخه معلومه شوه چې داسې خوشبولګول مکروه نه دي.

ف:دراجح قول مطابق له احرام څخه وروسته پربدن دداسې خوشبوپاته کيدل کومه چې ذی جرم وي مکروه نه ده البته پرجامومکروه ده کمافی شرح التنویر:ویستحب طیب بدنه ان کان عنده لالوبه بمایبقی عینه هو الاصح:وقال ابن عابدین:(قوله وطیب بدنه)ای استحبابا عندالاحرام زیلعی ولو بمایبقی عینه کالمسک والغالیة هو المشهور،وقال بعدسطر:والفرق بین الثوب والبدن انه اعتبرفی البدن تابعا والمتصل بالثوب منفصل عنه.(الدر المختار مع الشامیة:۲/۱۷۱)

(۱۵)اوس دي دوه رکعته لمونځ اداء کړي﴿ لماروی جابر ﷺ ان النبی ﷺ صلی بذی الحلیفة رکعتین ﴾ (حضرت جابر ﷺ روایت کوي چې نبی کریم ﷺ په ذوالحلیفه کې دوه رکعته لمونځ اداء کړ)، بیا څرنګه چې حج طویل اومشکل عمل دی لهذا له الله تعالی څخه دي ددي اسانه کولو لپاره دادعا وغواړي ،اللهم ان اریدالحج الخ،داسانی په دعاکې دقبولیت دعا په دي وجه سره شامل کړل شوي ده چې دهر عمل قبلیدل ضروري نه دی لهذا دحضرت ابراهیم اواسماعیل علیهما السلام په اتباع کولوسره دي دقبولیت دعاء هم وکړي لکه چې دبیت الله دتعمیرپه وخت کې هغوئ داسې دعاء کړي وه ربناتقبل منا انک انت السمیع العلیم.

(۱۶)له دي وروسته یعنی له دوه رکعته لمونځ اداء کولو څخه وروسته دي تلبیه ویل شروع کړي ځکه چې مروی ده چې نبی کریم ﷺ له خپل لمانځه څخه وروسته تلبیه ویلې وه اوکه په سورلی له سوریدلو څخه وروسته یې تلبیه وویله نوهم صحیح ده ځکه چې دواړه قسمه روایات موجوددي ،نوکه ته حج افرادکونکی یې نوپه تلبیه کې به صرف دحج نیت کوي ځکه چې نیت دټولو عباداتو لپاره شرط دی ، دمصنف ﷫ عبارت ،تنوی بهاالحج ،حال دی په لب کې له مستترضمیر څخه ای حال کونک ناویابالتلبیة الحج.

ف:بایدیادوساتل شي چې احرام دازاراورداء اغوستلوته نه ویل کیږي لکه چې دعوامودغه خیال دی بلکه احرام نیت اوتلبیه یانیت اوهدی (دقربانی هغه څاروی کوم چې په اشهرحج کې په حرم کې دننه دذبح کولولپاره لیږل کیږي )له ځان سره بولوته ویل کیږي .

## دتلبیې بیان

(۱۷)له دي ځایه څخه مصنف ﷫ دتلبیې الفاظ درشیې چې دتلبیې الفاظ لبیک اللهم لبیک الخ دي ځکه چې له نبی کریم ﷺ څخه همدامنقول دي ،تلبیه ویل واجب ده که له مذکوره الفاظو څخه علاوه تسبیح وتهلیل یعنی سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله ووایې اونیت وکړي نومحرم کیږي .

(۱۸)دتلبیې مذکورالفاظ څرنګه چې باتفاق الرواة له نبی کریم ﷺ څخه مروی ده لهذاپه دوئ کې کمې کول مکروه دي نوپه دي کې دي کمبوت نه کوي البته ددي الفاظوله ویلو څخه وروسته که دحمدوثناء نورالفاظ ورزیات کړي نودابلاکراهت جائزدي ځکه چې مقصودثناء اودعبودیت اظهاردی لهذااضافه ممنوع نه ده ،همداشان مروی ده چې حضرت ابن عمر ﷺ په خپله تلبیه کې داالفاظ زیات کړي وو ،لبیک وسعدیک والخیر کله فی یدیک والرغباء الیک لبیک لبیک ،البته دتلبیې دمذکوره کلماتوپه منځ کې کومه بله کلمه ویل مکروه ده کمافی الدر المختار:وزدندبافیهاای علیهالافی خلالهاولاتنقص منهافانه مکروه تحریما (الدر المختار علی هامش الشامیة:۲/۱۷۳)

(۱۹) فإذا لبيت ناويا فقد أحرمت فاتق الرفث والفسوق والجدال (۲۰) وقتل الصيد والإشارة إليه والدلالة عليه (۲۱) ولبس القميص والسراويل والعمامة والقلنسوة والقباء (۲۲) والخفين إلا أن لا تجد النعلين فاقطعهما أسفل من الكعبين

**ترجمه:** نو كله چې ته تلبيه ووايې په نيت كولو سره نو ته محرم شوي نو پرهيز وكړه له بد وخبرو څخه اوله ګناهونو څخه اوله جنګ كولو څخه، او دښكار له قتل كولو څخه او دښكار طرف ته له اشاري كولو څخه اوله ښكار ور ښودلو څخه او دقميص او پرتوګ او پګړی او ټوپی او جبې (اغستلو څخه)، او موزو په پښو كولو څخه مګر دا چې ته نه موندي چپلې نو موزي پري كړه دبجلكو تر كښته پوري.

**تشريح:** (۱۹) كله چې ته تلبيه ووايې او نيت يا د نيت قائم مقام (يعني هديي له ځان سره روانه كړي) هم وكړي نو اوس ته محرم شوي، په عبارت كې دا تصريح ده چې محرم په نيت او تلبيه دواړو سره محرم كيږي صرف په نيت سره نه محرم كيږي تر څو چې تلبيه هم ونه وايې ځكه چې دا عقد ادائيګی ده لهذا په دي وخت كې ذكر او نيت دواړه ضروري دي لكه چې په لمانځه كې دشروع كيدلو لپاره نيت او ذكر دواړه ضروري دي، اوله تلبيې سره يې دنيت قيد ځكه اضافه كړ چې په صرف تلبيه ويلو بغير له نيته څوک محرم نه ګرځي ځكه چې په عبادت كې شروع بغير له نيت څخه نه كيږي، دامام ابو يوسف رحمه الله په نزد بغير له ذكر څخه صرف په نيت سره هم محرم كيږي هغه يې په روژه باندي قياسوي، قول اول راجح دی كما في الهندية: حتى لا يصير محرما بالتلبية بدون نية الاحرام ولا يصير شارعا بمجرد النية مالم يأت بالتلبية او مايقوم مقامها من الذكر او سوق الهدى او تقليد البدنة (هنديه: ۱/۲۲۳)

بيا له احرام تړلو څخه وروسته به حاجی له منهياتو يعنی رفث، فسوق او جدال وغيره څخه ځان ساتي لقوله تعالى ﴿ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ ﴾ (يعنی له احرام تړلو څخه وروسته نه رفث شته نه فسوق او نه جدال) دباری تعالی دا قول خبر دی دنهی په معنی سره ای لاترفثوا ولاتفسقوا ولاتجادلوا، مراد دا دی چې اوس دا كارونو له تاسره ورنه دي لهذا مه يې كوه، اوله رفث څخه مراد جماع يا له ښځو په موجود والی كې دجماع تذكره ده يا فحش خبري دي، فسوق دخروج عن طاعة الله په معنی سره دی، دلته له ده څخه مراد ټول ګناهونه دي همدا دحضرت ابن عمر او ابن عباس رضی الله تعالی عنهما قول دی او همدا صحيح دی، اوله جدال څخه مراد له خپلو ملګرو سره جنګ او جنجال كول دي.

**ف:** ځرنګه چې دحج به باب كې دلمانځه په نسبت وسعت زيات دی لهذا هر داسې ذكر كفايت كوي چې په هغه سره قصد تعظيم وي خواه كه فارسي وي او كه په عربی كه څه هم عربی احسن ده، او دحج په باب كې وسعت په دي وجه دی چې په ده كې دذكر پر ځای فعل (يعنی تقليد بدنه) هم كفايت كوي يعنی په نيت او تقليد بدنه سره هم محرم ګرځي.

(۲۰) قوله وقتل الصيد ای اتق قتل الصيد، يعنی له احرام تړلو څخه وروسته دي نه خپله ښكار وژني لقوله تعالى ﴿ لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ﴾ (يعنی ښكار مه وژنئ په داسې حال كې چې تاسې محرم ياست) او نه دي ښكار طرف ته اشاره كوي كه ښكار حاضر وو او نه دي ښكار چاته ور ښيې كه ښكار غائب وو ځكه چې په حديث شريف كې د اشاري او دلالت ممانعت هم ثابت دی.

(۲۱) قوله ولبس القميص ای واتق لبس القميص الخ، يعنی له احرام تړلو څخه وروسته دي محرم قميص، پرتوګ، عمامه، ټوپی او جبه نه په تن كوی او موزي دي نه په پښو كوي ځكه چې حضرت ابن عمر رضی الله عنه

فرمایلي: ﴿ سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم ما يلبس المحرم قال لا يلبس القميص ولا العمامة ولا البرنس ولا السراويل ولا الخفين إلا أن لا يجد النعلين فليقطعهما حتى يكونا أسفل من الكعبين ﴾ (یعنی له نبی کریم ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې محرم څه شی په تن کړي؟نبی کریم ﷺ وفرمایل: چې قمیص،عمامه،توپي اوشلواراوموزي دي نه په تن کوي مګرداچې چپلان نه وموندي نوموزي دي له کعبینو څخه ترکښته پوري قطع کړي).

ف:اودمذکوره اشیاء له اغستلو څخه په معتادطریقه سره اغوستل مراددي لهذاکه یې له قمیص څخه ازاراوله پرتوګ څخه رداء جوړه کړه نوبیا دي کې څه حرج نشته کمافی الشامیة: والحاصل ان الممنوع عنه لبس المخیط اللبس المعتاد(ردالمحتار:۲/۱۷۷)

(۲۲)قوله والخفین ای اتق المحرم الخفین ،یعنی محرم دي موزي نه پښوکوي ،البته که له چاسره چپلې نه وي نودی که موزي له بجلکو څخه کښته پرې کړي اوپښویې کړي نوجائزدی﴿لقوله ﷺ ولا الخفين إلا أن لا يجد النعلين فليقطعهما حتى يكونا أسفل من الكعبين﴾(یعنی محرم دي موزي نه په پښوکوي البته کې یې چپلې ونه موندلې نوموزي دي له کعبینو څخه کښته پرې کړي اوبه پښودي کړي).

ف:اوله کعبین څخه دلته هغه جوړمراددی کوم چې دتسمې دتړلوپرځای په وسط قدم کې واقع دی چېرته چې دګوتو هډوکې سره مجتمع کېږي،دپښې دواړوطرفوته راوتلي هډوکي مرادنه دي،دمصنف ﷫ عبارت ولبس القمیص والسراویل الخ عطف دی په الرفث باندي ای اتق لبس القمیص الخ.

(۲۳)وَالثَّوْبَ الْمَصْبُوغَ بِوَرْسٍ أَوْ زَعْفَرَانٍ أَوْ عُصْفُرٍ (۲۴)إِلَّا أَنْ يَكُونَ غَسِيلًا لَا يَنْفُضُ (۲۵)وَسَتْرَ الرَّأْسِ وَالْوَجْهِ (۲۶)وَغَسْلَهُمَا بِالْخِطْمِيِّ وَمَسَّ الطِّيبِ (۲۷)وَحَلْقَ رَأْسِهِ وَقَصَّ شَعْرِهِ وَظُفْرِهِ

**ترجمه**:او(پرهیزکوه)له داسې جامې څخه کوم چې په ورس یازعفران یاعصفرسره رنګ شوي وي، مګرداچې پرېمنځل شوي وي او خوشبونه څنې محسوسیږي،اودسراومخ له پټولو څخه،اودوئ دواړوله پرېمنځلو څخه په ګل خطمی سره اوله خوشبوئې لګولو څخه،اودسرله خریلو څخه،او دوېښتانواونوکانوله پرې کولو څخه.

**تشریح**:(۲۳)قوله والثوب المصبوغ الخ ای واتق الثوب المصبوغ ،یعنی محرم دي په ورس (ژړرنګ یمنی وابنه دي)زعفران (یوقسم نهایت خوشبولرونکی اوژیړرنګی ګل دی)اوپه عصفر(یوژړرنګی بوټی په کوم چې رنګ کیږي)سره رنګ شوي جامې نه په تن کوي،﴿لقوله ﷺ لایلبس المحرم ثوبامسه الزعفران ولاورس﴾ (یعنی محرم دي داسې جامه نه په تن کوي په کوم چې زعفران یاورس لګیدلی وي)،اوعصفر دخوشبوئې په وجه ممنوع دی.

(۲۴)البته که په مذکوره کلانوسره له رنګولو څخه وروسته جامه پرېمنځل شوي وه اواوس له جامو څخه خوشبوئې نه راتله نودداسې جامواستعمال جائزدی ځکه چې مانع خوشبووه چې په پرېمنځل کیدلوسره پاتې نه شوه.

(۲۵)قوله وستر الراس ای واتق ستر الراس ،یعنی محرم دي خپل سراوخپل مخ نه پټوي ولی چې یواعرابی داحرام په حالت کې له اوښ څخه ولویدی اووفات شونونبی کریم ﷺ وفرمایل ﴿لاتخمروا وجهه ولا راسه فانه یبعث یوم القیامة ملبیا﴾ (یعنی تاسې دده مخ اوسرمه ورپټوئ ځکه چې دی به دقیامت په ورځ په تلبیه ویلوسره

رااوچت کړای شي )نودنبی کریم ﷺ دمخ اوسرله پټولوڅخه منع کول پردي دلالت کوي چې په مخ نه پټولوکې داحرام اثردی .

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزددنارینه ولپاره مخ پټول جائزدی ﴿لقوله ﷺ إِحْرَامُ الرَّجُلِ فِي رَأْسِهِ وَإِحْرَامُ الْمَرْأَةِ فِي وَجْهِهَا﴾(یعنی دنارینه احرام دده په سرکې ده اودښځې احرام ددي په مخ کې ده )نوځرنګه چې دنارینه په مخ کې احرام نشته په دي وجه دده سرپټول جائزدی ،امام شافعی ته ځواب ویل شوی دی چې اول خوداحدیث په ابن عمر رضی الله عنه موقوف دی مرفوع نه دی لهذادادمرفوع روایت معارض نه شي کیدای ، اوکه دامرفوع تسلیم شي نوبیادا ویل کیږي چې په دي حدیث کې بې شکه داذکردی چې دنارینه احرام په سرکې دی مګرپه مخ کې داحرام نفي خونشته ،همدارازکله چې ښځه دشریعت له طرفه ماموره ده چې مخ لڅ وساته حال داچې دښځې لپاره په مخ نه پټولوکې دفتنې خوف هم شته نونارینه خوبه په طریقه اولی سره په مخ نه پټولوماموروي .

(۲۶)قوله وغسلهما بالخطمی ای واتق غسلهما بالخطمی ،یعنی محرم دي سراومخ په ګل خطمی (دایو خوشبو لرونکی عراقی وابنه دی چې دصابون کارکوي )سره له پریمنځلوپرهیزکوي ،اوله خوشبو لګولوڅخه دي پرهیزکوي ځکه چې نبی کریم ﷺ فرمایلي دي ،الحاج الشعث التفل (حاجې دپراګنده ویښتانواوبغیرخوشبووالاده ) مراددادی چې خوشبودي نه لګوي اوپراګندګی دي نه لري کوي ،نوپه ګل خطمی کې یوقسم خوشبوهم شته اوداپراګندګی هم لري کوي په دي وجه په ګل خطمی سره دسراومخ پریمنځل دمحرم لپاره ممنوع دي .

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزدنکریزي لګول جائزدي ځکه چې نکریزي خوشبوئي نه ده ،مګرامام شافعی رحمه الله ته ځواب ویل شوی دی چې نبی کریم ﷺ فرمایي ﴿ الحناء طیب ﴾ (نکریزي خوشبوئي ده ) نوداویل چې نکریزي خوشبوځه ده صحیح نه دي صاحب هندیې حناء ته خوشبوویلې دي لکه چې فرمایې :ولیس له ان یختضب بالحناء لانه طیب کذافی الجوهرة النیرة (الهندیة: ۲۴۳ /۲)

## دخوشبوئي لرونکومشروباتوحکم

ف:نن صبادیرداسې مشروبات ایجادشوي دي کوم چې خوشبوداروي ،همداشان په غذاګانوکې هم داسې شیان استعمالیږي چې خوشبوداروي لکه زعفران ،ګلاب وغیره ،(۱)نوکوم شیان چې وي صرف دخوشبولپاره ،که دویٔ په خپل اصل حالت کې بغیرله پخولواوپه خالص طریقه سره استعمال کړل شي نودانا جائزدي اوددي په وجه سره به کفاره واجبیږي که یې ددواء په طوراستعمال کړي اوکه یې دغذاء په طوراستعمال کړي ،(۲)اوکه خالص خوشبودارشی پوخ کړای شي نوهغه دخوشبوداریه حکم کې نه پاته کیږي .(۳)اوکه داسې خالص خوشبودارشی له کوم بل شي سره په مخلوطه طریقه سره وخوړل شي نودغالب اعتباربه کیږي.(۴)اوکه په مشروب کې خالص خوشبودارشی واچول شي نو هغه ولوکه دمقداراواجزاؤپه اعتبارسره لږوي بیاهم په باربارڅښلوسره دم واجبیږي .(۵)اوکوم شی چې په اصل کې

دخوشبولپاره نه وي بلکه دغذاياکوم بل مقصدلپاره وي مګرپه ده کې خوشبوهم وي اودخوشبوا و غذادواړولپاره استعمال شي نوپه داسې شی کې طريق استعمال معتبردی ،نوکه دمالش لپاره استعمال شو نودده حکم دخوشبودارشي دی اوکه دغذايادواء لپاره استعمال شونودخوشبوپه حکم کې نه ده ، نودذي تفصيلاتومطابق دآم ،سنتري ،سيب وغيره جوس داحرا م په حالت کې څښل جائزدي اوکه په پکوان (غوړو)کې خوشبودارشی استعمال شوی وو لکه زعفران وغيره اوهغه پاخه کړای شونوپه دي کې هم مضائقه نشته ،اوهمداشان هغه دواياني چې به هغوکې خوشبودارشيان ګډشوي وي دخوشبودارشی په حکم کې نه دي .(جديد فقهی مسائل (۲۴۲/۱)

ف:په عام ډول سره په حجراسودباندي په کثرت سره عطرلګول کيږ ياوداضروري هم ده څکه چې دمچې اخيستونکو دناړو په وجه سره ډيره بدبويي پيداکيږي ،اوله حجراسودڅخه دمچې اخيستلويااستلام کولوپه صورت کې په لاسونو اوشوندو باندي دخوشبوئي لګيدل يقني ده لهذداحرام په حالت کې په داسې صورت کې دحجراسودله مچې څخه اجتناب کول په کاردي څکه چې دمستحب کارلپاره دممنوع ارتکاب کول صحيح نه دی.(جديد فقهی مسائل:۲۴۶/۱)

(۲۷)قوله وحلق راسه ای ولاتق حلق راسه ،يعنی محرم دی دسراوبدن دويښتانوله خريلوڅخه پرهيزکوي څکه چې په دي کي پراګندګی والی اوخيري وغيره زائليدل متحقق کيږي کوم چې دمذکوره بالاحديث په وجه سره ممنوع دي ،همداشان له نوکانوپريکولوڅخه دي هم پرهيزکوي څکه چې په دي کې هم پراګندګی اوخيري زائل کيدل متحقق کيږي کوم چې ممنوع دي .

ف:دويښتانوپري کول په هرقسم ممنوع دي خواه که يې خپله پري کوي اوياکوم بل چاته په پري کولو قدرت ورکړي خواکه په بليډسره وي ياپه غابنونوسره وي ياپه چونه وغيره سره وي کمافی الشامية :والمراد ازالة شعره کيفما کان حلقا وقصا ونتفا ونورا واحراقا من ای مکان کان من الراس والبدن مباشرة او تمکينا (ردالمحتار: ۱۷۷/۲)

(۲۸)لَا الِاغْتِسَالُ وَدُخُولُ الْحَمَّامِ وَالِاسْتِظْلَالُ بِالْبَيْتِ وَالْمَحْمَلِ (۲۹) وَشَدُّ الْهِمْيَانِ فِي وَسَطِهِ (۳۰) وَأَكْثِرِ التَّلْبِيَةَ مَتَى صَلَّيْتَ أَوْ عَلَوْتَ شَرَفًا أَوْ هَبَطْتَ وَادِيًا أَوْ لَقِيتَ رَكْبًا وَبِالْأَسْحَارِ وَالْفَاصِرُ تُكَبِّيهَا

**ترجمه**:نه له غسل څخه او حمام ته له داخليدلو څخه اوله سايه حاصلولو څخه په کوراوکجاوي سره ،اوله هميانی ترلو څخه په ملاباندي ،اوپه کثرت سره تلبيه وايه کله چې لمونځ اداء کړي اولوړ خيژي ياکوزيږې په کومه شيله ياله سورو سره يوځای شې اودسهارپه وخت کې په داسې حال کې چې ته به لوړوي آوازاخپل په تلبيه باندي .

**تشريح**:(۲۸)قوله لاالاغتسال ای لاتتق الاغتسال ،يعنی دمحرم لپاره له غسل څخه دڅان ساتلوحکم نشته لهذاپه غسل کولوکې څه حرج نشته څکه چې پيغمبر ﷺ داحرام په حالت کې غسل کړی وو ،همدارازله حضرت عمر رضی الله عنه څخه داحرام په حالت کې غسل کول ثابت دی ،اودغسل لپاره حمل ته له داخليدلوڅخه دڅان ساتنې حکم نشته لهذاحمام ته داخليدی شي څکه چې نبی کريم ﷺ په مقام جحفه کې حمام ته داخل شوی وو ،همدارازپه کوم مکان ياکجاوه سره دسوري حاصلوڅخه دڅان ساتلوحکم نشته لهذاپه دي سره سايه حاصلولی شي څکه چې داشيان ددبدن نه مس کوي نوداد مکان دبام سره مشابه شول .

(۲۹) قوله وشد الهميان اى ولايكره شد الهميان ،يعنى له هميانى ترلو څخه هم دڅان ساتنې حکم نشته ځکه چې دانه ګنډل شوي جامه ده اونه دګنډل شوي جامې په معنى ده ،هميانى بكسر الهاء هغه خلته يا کڅوړي ته ويل کيږي چې په هغې روپۍ اچول کيږي اوترملاتړل کيږي.

ف :دامام مالک رحمه الله په نزدکه په هميانۍ کې دبل چاخرڅ وو نوتړل يې مکروه دي ځکه چې دده ضرورت نشته ،هوکه په هغې کې دخپله خرڅه ايښې وه نودضرورت په وجه سره مکروه نه ده ،احناف وايې :چې هميانى نه ګنډل شوي جامه ده اونه دګنډل شوي جامې په معنى ده لهذادي په تړلو کې څه حرج نشته خواه که په هغې کې خپله خرڅه وي اودبل خرڅه وي.

(۳۰) يعنى دمحرم لپاره وروسته له لمانځه که فرض وي اوکه نفل ،په لوړه دختلوپروخت ،په کومه شيله کې دکښته کيدلوپروخت ،دسورسره دملاقات پروخت اودسهارپروخت په کثرت سره تلبيه ويل مستحب دی ځکه چې دنبى کريم ﷺ اصحابوکرامو ﷺ به په دي وختونوکې تلبيه ويله ،همدارازتلبيه په احرام کې دتکبيرات لمانځه په شان ده لهذاله يوه حال طرف ته دانتقال پروخت به ويل کيږي ،اوتلبيه دي په لوړاوازسره وايې ﴿ لقوله ﷺ خيرالحج العج والثج ﴾ ،له العج څخه په لوړاوازسره تلبيه ويل دي،اوله الثج څخه مراداراقة الدم دی.

ف :اودمصنف رحمه الله په قول لقيت رکباکې دحجاج له جماعت سره يوځای کيدل مراددي که څه هم هغوئ په پښوروان وي، دمصنف رحمه الله په عبارت ،اکثرالتلبيه، کې، اکثر،له باب افعال څخه دامرصيغه ده او ،رافعاصوتک ،حال دی د ،اکثر،له ضميرمستترڅخه ،اى حال کونک رافعاصوتک بالتلبية.

## دطواف قدوم بيان

(۳۱) وَابْدَأْ بِالْمَسْجِدِ بَعْدَ دُخُولِ مَكَّةَ وَكَبِّرْ وَهَلِّلْ تِلْقَاءَ الْبَيْتِ (۳۲) ثُمَّ اسْتَقْبِلْ الْحَجَرَ الْأَسْوَدَ مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُسْتَلِمًا بِلَا إيذَاءٍ (۳۳) وَطُفْ مُضْطَبِعًا وَرَاءَ الْحَطِيمِ آخِذًا عَنْ يَمِينِك مِمَّا يَلِي الْبَابَ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ (۳۴) تَرْمُلُ فِي الثَّلَاثَةِ الْأُوَلِ فَقَطْ (۳۵) واستلم الحجر كلمامررت به ان استطعت واختم الطواف به (۳۶) وبركعتين بالمقام اوحيث تيسر من المسجد لِلْقُدُومِ (۳۷) وهو سُنَّةٌ لِغَيْرِ الْمَكِّيِّ

**ترجمه** :اوابتداء وکړه په مسجد حرام په مکه مکرمه کې په داخليدوسره اوالله اکبروايه اولااله الاالله وايه دبيت الله په ليدوسره ،بيادحجراسود مخ ته ورسه په الله اکبر،لااله الاالله ويلوسره حجراسود مچ کړه چاته له تکليف رسولو څخه بغير، اوطواف وکړه په داسې حال کې اضطباع دي کړي وي دحطيم له شا څخه په شروع کولوله خپل راسته طرف څخه کوم چې ددروازي لورته ده اوه شوطه ،رمل کوه صرف په اول دريوچکرونوکې ،اومچه وه حجراسودکله چې هم ته دده سره تيريږې که دي استطاعت وو اوختم کړه طواف په استلام حجرسره ،اوپه دوه رکعته لمانځه سره په مقام ابراهيم کې ياچيرته چې ځاى وموندي په مسجد کې دقدوم لپاره ،اوطواف قدوم سنت دی دغيرمکى لپاره .

**تشريح** :(۳۱) يعنى کله چې محرم مکې مکرمې ته داخل شي نودخپل سامان په کوم محفوظ ځاى کې له اېښودلو څخه وروسته ترټولوله مخه دي په مسجدحرام سره شروع وکړي ، ځکه چې مقصوددبيت الله زيارت دی اوبيت الله په مسجد حرام کې ده ،اوکله چې بيت ته مخامخ شي اوپه بيت الله يې نظرولګيږي

نو الله اكبر دي ووايي دكوم چې مطلب دادى چې له هرلوى شي څخه لوى دى ،په دي كې اشاره ده چې دكعبې عزت اوحرمت دالله تعالى له طرفه وركړل شوى دى ددي ذاتي نه دى ،او لااله الاالله دي ووايي ترڅو دا وهم نه وي چې مقصود بالعبادة كعبة الله ده .

ف: او دعاء دي وكړي ځكه چې دا داجابت (قبوليت) دعاء ځاى دى مروى ده چې نبى كريم ﷺ دا دعاء ويله ، اللهم زد بيتك هذا تشريفا وتعظيما وتكريما ومهابة ، صاحب فتح القدير وايي چې ترټولو اهمه دعاء بلاحسابه دجنت طلب كول دي اوترټولو اهم ذكرپه نبى كريم ﷺ درود ويل دي كمافى الشامية :ولم يذكر فى المتون الدعاء عند مشاهدة البيت وهى غفلة عما لايغفل عنه فانه عندها مستجاب ........وفى الفتح ومن اهم الادعية طلب الجنة بلاحساب والصلوة على النبى ﷺ هنا من اهم الاذكار (ردالمحتار: ۲/۱۷۹)

(۳۲)بيا دي دحجراسود استقبال وكړي اوكوم مسلمان ته له تكليف وركولو څخه بغيردي دحجراسود استقبال وكړي ﴿لماروى ان النبى ﷺ دخل المسجد فابتدأ بالحجر فاستقبله وكبروهلل﴾ (يعني مروى ده چې نبي كريم ﷺ مسجدحرام ته داخل شونو په حجراسود سره يې شروع وفرمايله نو دده لورته متوجه شو الله اكبر يې ووايه او لااله الاالله يې وويله ).

ف: دا قيد يې ځكه ولګاوو چې مسلمان ته له تكلف وركولو بغير دي استلام وكړي چې نبى كريم ﷺ حضرت عمر ﷺ ته وفرمايل چې ته قوى شخص يې په حجراسود له خلګو سره داسې مزاحمت مه كوه چې ضعيف خلګوته تكليف ورسوي بلكه كه دي حجراسود خالي وموندنو استلام يې وكړه كه نه نو استقبال يې وكړه اوتكبير او تهليل ووايه ،همدا راز استلام سنت دى او مسلمان ته له تكليف وركولو څخه ځان ساتل واجب دى لهذا دحصول سنت يعني استلام الحجرلپاره به واجب (يعني له ايذاء مسلم څخه ځان ساتل )نه پريښودل كيږي.

ف: استلام اوتقبيل دي په دي ډول سره وكړي چې دواړه لاسونه دي په حجراسود په اېښودلو سره دي حجراسود په دي ډول سره مچ كړي چې له خولي څخه آوازونه باسي كه يې حجراسودنه شواى مچولى نو كه ممكن وو نو په لاس كې دي لاټى وغيره كوم بل شى ونيسي هغه دي له حجراسود سره مس كړي بيا دي هغه شى مچ كړي اوكه دا هم ممكن نه وو نو بيا دي دواړه لاسونه ترغوږونو پوري اوچت كړي اواشاره دي وكړي اولاسونه دي مچ كړي،دمصنف رحمه الله عبارت مكبرامهللا مستلما،حال دى داستقبل له ضمير مستترڅخه ،اى حال كونك مكبرامهللا مستلما.

(۳۳)محرم دي اوس طواف قدوم په دي ډول شروع كړي چې له استلام حجرورسته دي اول اضطباع وكړي (يعني خپل څادر دي له ښي بغل څخه وباسي په كيڼه اوږه دي واړوي په دي ډول به ښي اوږه لڅه پاته شي اوكيڼه اوږه به دڅادر دواړو طرفونو سره مستوره شي )ځكه چې مروى ده چې نبى كريم ﷺ داضطباع په حالت كې طواف كړى وو ،بيادله خپل ښى طرف نه چرته چې دبيت الله دروازه ده دحطيم (له بيت الله سره متصل دشپږګزه اويوي لوېښتي په اندازه كومه چبوتره چې معلومه ده هغې ته حطيم ويل كيږي )له شاڅخه دبيت الله اوه شوطه (شوط وايي په بيت الله يو ځل له حجراسود څخه بيرته ترحجراسود پوري چكرلګولو ته )طواف وكړي ولې چې له حضرت جابر ﷺ څخه مروى ده ،﴿انه ﷺ لما قدم مكة بدأ بالحجر فاستلمه ثم

مَشى على يَمينِه فَرَمَلَ ثَلاثًا وَمَشى أَرْبَعًا ﴾ (يعنى نبى كريم ﷺ چې كله مكې مكرمې ته راغى نوله حجراسود څخه په شروع كولويې دهغه استلام وكړبياخپل ښى طرف ته ولاړى په دري شوطه كې يې رمل وكړاوپه څلوروشوطونوكې په وقارسره ولاړى )اوله حضرت ابن عباس ﷺ څخه مروى ده چې من طاف بالبيت فليطف من وراء الحجر (څوک چې دبيت الله طواف كوي هغه دي دحطيم له شا څخه طواف وكړي ).

ف:بايدياد وساتل شي چې اضطباع صرف په طواف كې سنت ده له طواف څخه وړاندي ياله طواف څخه وروسته سنت نه ده كمافى الشامية:ثم قال وهوموهم ان الاضطباع يستحب من اول احوال الاحرام وعليه العوام وليس كذالک فان محله المسنون قبيل طواف الى انتهائه لاغير.(ردالمحتار:۲/۱۷۱)

ف:په طواف كولوكې حطيم هم په طواف كې رانيول واجب دي لهذاكه چادبيت الله اوحطيم په منځ كې طواف وكړنو احتياطابه دامعتبرنه وي كمافى شرح التنوير:(وراء الحطيم)وجوبالان منه ستة اذرع من البيت فلوطاف من الفرجة لم يجز كاستقباله احتياطا(الدرالمختار على هامش ردالمحتار:۲/۱۸۱)

ف:حطيم دماتولوپه معنى دى نوځرنگه چې مشركينودبيت الله دجوړولوپروخت دخرڅ دكمى په وجه سره دبيت الله څه حصه له بيت الله څخه جلاكړي وه په دي وجه دي حصې ته حطيم ويل كيږي ،حطيم ته حجر (بكسرالحاء )هم ويل كيږي حجر دبندولوپه معنى دى نوځرنگه چې داحصه دبيت الله له تعمير څخه بنده كړل شوي وه په دي وجه سره دي ته حطيم ويل كيږي.

(۳۴)يعنى دطواف په اولنيودريوشوطونوكې دي رمل (داوږوپه شورلوسره لږتيزتللوته رمل ويل كيږي )وكړي اوپه باقى څلوروشوطونوكې دي په خپل هيئت سره په وقاررفتاركوي لماروينامن حديث جابر ﷺ ،اوهرهغه طواف چې له هغه څخه وروسته سعى بين الصفاوالمروة وي په هغه كې رمل هم شته اوله كوم څخه وروسته چې سعى نه وي په هغه كې رمل هم نشته .

ف:اودرمل سبب داده چې نبى كريم ﷺ دعمرة القضاء په موقع له ځينومشركينوڅخه داواوريدل چې مسلمانان دمدينې گرمې كمزوري كړي دي ،نونبى كريم ﷺ خپل دواړه بازوگان شكاره كړل رمل يې وكړاوخپلوصحابه كرامو ﷺ ته يې هم درمل كولوحكم وكړترڅودمسلمانانودبهادري مشاهده مشركين وكړي بيادا سبب كه څه هم زائل شومگردرمل حكم باقى دى ،دعلامه شامى رحمه الله تحقيق دادى چې كه دطواف شروع كولوڅخه وړاندي گڼه گونه (رش) وو نوودي دريږي كله چې رش ختم شي نوطواف دي مع رمل شروع كړي اوكه دطواف په منځ كې رش جوړشونوبيادي نه دريږي بلكه روان دي اوسې ترڅوچې دمل موقع په لاس ورشي ،قال:وان كانت الزحمة قبل الشروع وقف لان المبادرة الى الطواف مستحبة فيترکها للسنة المؤكدة وان حصلت فى الاثناء فلايقف لئلاتفوت الموالات بل يمشى حتى يجد الرمل وهو الاظهر (ردالمحتار:۲/۱۸۳) .

ف:بيت الله شريف ته قريب طواف مع رمل كول افضل دى ليكن كه يې بيت الله ته نژدي درش په وجه له رمل سره طواف نه شوكولى نوبياله بيت الله څخه ليري طواف مع رمل كول افضل دى تربيت الله ته قريب بلارمل طواف كولوڅخه.

(۳۵)اودهرشوط په اختتام كې چې په حجراسودتيريږي نودحجراسوداستلام دي كوي ځكه چې دطواف شوطونه دلمانځه دركعتونوپه څيردي نولكه څرنگه چې هرركعت په تكبيرسره شروع كيږي

هداشان به هرشوط په استلام سره شروع کوي ، په دي شرط چې نوروته له تکليف رسولو څخه بغيرداستلام استطاعت وي لما مر، اوخپل طواف دي په استلام حجرسره ختم کړي لکه څرنګه چې په استلام سره شروع کړی وو ، او استلام حجرسنت دی .

(۳۶) قوله وير كعتين في المقام اى واختم الطواف بركعتين في مقام ابراهيم عليه السلام، يعني طواف دي په مقام ابراهيم (هغه ډبره په کومه چې په دريدلوسره حضرت ابراهيم عليه السلام دبيت الله تعميرکاوو په کومه کې چې دحضرت ابراهيم عليه السلام دقدم مبارک نشانونه دي ) کې په دوه رکعته لمونځ اداء کولوسره ختم کړي اوکه په مقام ابراهيم کې ځاي ونه موندنوپه مسجد کې حرم کې چې چيرته ځاى وموندي دادوه رکعته لمونځ دي اداء کړي ځکه چې مروى ده چې نبى کريم ﷺ چې کله له طواف څخه فارغ شونومقام ابراهيم ته راغى اودا آيت مبارک يې تلاوت کړ ﴿ وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى ﴾ (يعنى له مقام ابراهيم څخه مصلى جوړه کړئ ) اودوه رکعته لمونځ يې اداء کړ،نونبى کريم ﷺ دمذکوره ايت په تلاوت کولوسره تنبيه وفرمايله چې دادوه رکعته امتثال لامرالله تعالى دي اوامردوجوب لپاره وي لهذاله طواف څخه وروسته دادوه رکعته واجب دي البته دادوه رکعته دي په مکروه وخت کې نه اداء کوي .

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزددادوه رکعته سنت دي ځکه چې ددي دوجوب څه دليل نشته ،مګرامام شافعى رحمه الله ته ځواب ويل شوى دى چې دنبى کريم ﷺ په مذکوره بالاعمل سره ددي دوورکعتونو وجوب ثابتيږي معهدا ازقولی حديث هم شته ، ﴿ قال ﷺ وليصل الطائف لكل اسبوع ركعتين ﴾ والامر للوجوب (كذا في الهداية: ۱/ ۲۲۳)

(۳۷) قوله للقدوم ،متعلق دی دمصنف رحمه الله په قول طف پسې ،اى طف مضطبعاسبعة اشواط لاجل طواف القدوم،پورته ذکرشوى تفصيل چې دکوم طواف دپاره ذکرشو هغه ته طواف قدوم ويل کيږي داطواف دآفاقى (يعنى دمکې مکرمې له باهرڅخه راغلى کس ) لپاره سنت دى واجب نه دى ،په اهل باندى طواف قدوم نشته ځکه چې ددوئ په حق کې له قدوم (له باهرڅخه راتلل ) معدوم دي نواهل مکه دطواف قدوم په حق کې داسې دي لکه په مسجد کې حاضرشخص دتحية المسجد په حق کې .

ف: دامام مالک اوامام احمد رحمهما الله تعالى په نزدطواف قدوم دافاقى لپاره واجب دى ﴿ لقوله ﷺ من اتى البيت فليحيه بالطواف ﴾ (يعنى کوم کس چې بيت الله ته راشي نوهغه دي په طواف سره ددي تحيه اواکرام وکړي )،فليحيه ،دامرصيغه ده اوامروجوب فائده کوي لهذاطواف قدوم واجب دى ،مګردوئ ته ځواب ورکړل شوى دى چې په حديث شريف کې دتحيه ذکردى اوتحيه داکرام نوم دى دکوم چې ابتداء على سبيل التبرع وي لهذاله دي څخه وجوب نه ثابتيږي .

(۳۸) ثُمَّ اخْرُجْ إِلَى الصَّفَا وَقُمْ عَلَيْهِ مُسْتَقْبِلَ الْبَيْتِ مُهَلِّلًا مُكَبِّرًا مُصَلِّيًا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَاعِيًا رَبَّكَ بِحَاجَتِكَ (۳۹) ثُمَّ اهْبِطْ نَحْوَ الْمَرْوَةِ (۴۰) سَاعِيًا بَيْنَ الْمِيلَيْنِ الْأَخْضَرَيْنِ وَافْعَلْ عَلَيْهَا فِعْلَكَ عَلَى الصَّفَا (۴۱) وَطُفْ بَيْنَهُمَا سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ (۴۲) تَبْدَأُ بِالصَّفَا وَتَخْتِمُ بِالْمَرْوَةِ (۴۳) ثُمَّ أَقِمْ بِمَكَّةَ حَرَامًا وَطُفْ بِالْبَيْتِ كُلَّمَا بَدَا لَكَ

**ترجمه**: بيا ووځه دصفاطرف ته اوودريږه پرصفاباندي دقبلې لورته مخ کړه په تکبيراوتهليل اوپرنبى کريم ﷺ په درود ويلوسره اوله خپل رب څخه په خپل حاجت غوښتلوسره ،بيا راکښته شه دمروه لورته ، په منډه سره په تللودميلين اخضرين په منځ کې اوپه مروه هم هغه وکړه څه چې دي په صفاکړي وو ، اوطواف وکړه

دوه ئ تر منځ اوه شوطه ،شروع کوه په صفا او ختموه يې په مروه باندي ،بيا پاتنه شه په مکه مکرمه کې داحرام په حالت کې او طواف کوه پر بيت الله کله چې دي هم زړه وغواړي .

**تشريح:** (۳۸)له طواف قدوم څخه له فراغته وروسته دي په باب الصفا ووځي اوپر صفا دي دومره وخيژي چې بيت الله وربنکاره شي ځکه چې پر صفا باندي ختلو څخه مقصود استقبال بيت الله دی نو د بيت الله طرف دي متوجه شي تکبير ،تهليل اودرود شريف دي ووايي ،ځکه چې دقبوليت دعاء دپاره له دعاء څخه وړاندي ثناء اودرود شريف ويل کيږي اوبيا دي دخپلو حاجتونو دعاء وغواړي ځکه چې پر صفا باندي نبی کريم ﷺ څخه دعاء کول مروی ده .

**ف:** دمصنف رحمه الله عبارت مستقبلا البيت مکبرا مهللا مصليا على النبی ﷺ داعيا الخ ،احوال متداخله يا احوال مترادفه دي د قم له ضمير مستتر څخه ،ای حال کونک مکبرا مهللا الخ.

(۳۹)بيا دي له صفا څخه دمروه لورته راکښته شي په خپل هيئت اووقار سره دي په پښو ځي ،په پښو تلل واجب دي که څوک بلا عذره په سورلی باندي سوړ شو دهغه پر ذمه دم لازميږي.

(۴۰)قوله ساعيا بين الميلين الاخضرين ای حال کونک ساعيا وجريا بين الميلين الاخضرين ،يعنی کله چې بطن وادی ته ورسيږي نو دميلين اخضرينو په منځ کې دمنډه واخلي ځکه چې له نبی کريم ﷺ څخه دميلين اخضرين په منځ کې سعی مروی ده ،په مروه په ختلو سره دي دصفا په شان دلته هم تکبير ،تهليل اودرود شريف ووايي اودخپلو حاجاتو لپاره دي دعاء واغواړي ځکه چې دجابر رضی الله عنه په حديث کې راغلي دي حتی اتی المروة ففعل على المروة کما فعل على الصفا (ترڅو چې نبی کريم ﷺ راغی مروه ته اودلته هم نبی کريم ﷺ همداشان وکړ لکه څرنګه چې يې په صفا کړي وو )

**ف**:په اصل کې دمنډي اخيستلو محل بطن وادی ده اوس څرنګه چې وادی نشته بلکه صرف دعلامت په طورد وه دبري دمسجد حرام دشا په ديوال تراشلي دي هغوته ميلين اخضرين ويل کيږي اوس دي دوئ په منځ کې منډه وهي (نن صبا ويل کيږي چې دمنډي اخيستلو دمقام په ابتداء اوانتهاء کې دعلامت په طوردوه بتيانې لګولی دي ).له ميلين اخضرين څخه زيات دمنډي محل نه دی لهذا په وقار سره دي ځي ترڅو چې په مروه وخيژي .

(۴۱)يعنی دصفا او مروه په منځ کې دي اوه شوطه طواف (مراد سعی ده )وکړي ،داحنافو په نزد دصفا او مروه په منځ کې سعی کول واجب دي لقوله تعالى ﴿فمن حج البيت او اعتمر فلا جناح عليه ان يطوف بهما﴾ (يعنی څوک چې حج يا عمره وکړي پر هغه هيڅ ګناه نشته چې هغه دصفا او مروه طواف وکړي )وجه استدلال داده چې لفظ جناح ،داباحت لپاره استعماليږي کوم چې درکنيت اووجوب دواړو په نفی باندي دلالت کوي ليکن دنفی ايجاب په سلسله کې موږ دظاهر ايت څخه په دي وجه عدول وکړ ځکه چې په حديث شريف کې دي ﴿ان الله کتب عليکم السعی فاسعوا﴾ (الله تعالى په تاسې سعی کول ليکلې دي نو تاسې سعی کوئ )اوداحديث خبر واحد دی له کوم څخه چې وجوب ثابتيږي رکنيت نه ثابتيږي .

ف: له صفاڅخه چې ولاړشي اوپه مروه وخيږي دايوشوط دی بياله مروه څخه ولاړشي اوپه صفاوخيږي دادوهم شوط دی په همدي شان دي اوه شوطه پوره کړي ،امام طحاوی رحمه الله فرمايي چې له صفاڅخه تلل اوپه مروه ختل اوله مروه څخه تلل اوپه صفاختل دايوشوط دی ،مګردامام طحاوی رحمه الله داقول صحيح نه دی ځکه چې داخودوه شوطه دي يوشوط نه دی اومروی ده چې نبی کريم ﷺ اوه شوطه کړي وو حال اداچې دامام طحاوی دقول مطابق څوارلس شوطه کيږي.

(۴۲)سعی دي له صفاڅخه شروع کوي اوپه مروه دي ختموي ﴿ لقوله ﷺ ابدؤابمابدأ الله تعالى به ﴾ (يعنی دنبی کريم ﷺ ارشاددی چې تاسې سعی له هغه څخه شروع کوئ په کوم چې الله تعالی شروع کړي فرمايلې ده )دقران کريم ددي ايت طرف ته اشاره ده ﴿ اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِن شَعَائِرِ اللهِ ﴾ چې په دي ايت کې الله تعالی دصفاذکراول کړی دی لهذاسعی کونکی دي عملاسعی هم له صفاڅخه کوي ،خپله نبی کريم هم عملاسعی له صفاڅخه شروع فرمايلې وه.

(۴۳)يعنی دصفااومروه له سعی څخه چې فارغ شي نوکه دحج ترورځوپوري وخت وو نوپه مکه مکرمه کې دی احرام په حالت کې تراتم دذی الحجه پوري مقيم اوسي ځکه چې داشخص محرم بالحج دی نوترڅوچې دحج افعال مکمل نه کړی نه حلاليږي اوکله چې يې هم زړه وغواړي دبيت الله طواف دي کوي ﴿ لقوله ﷺ الطَّوَافُ بِالْبَيْتِ صَلَاةٌ ﴾ (يعنی دبيت الله طواف کول صلوة دی )اولمونځ يوه نيکې وضع کړل شوي ده کوم وخت چې يې هم زړه وغواړي هغه دي حاصله کړي فکذاالطواف.

ف:داطوافونه دافاقی لپاره له نفل لمانځه څخه افضل دي البته له دي طوافونوڅخه وروسته دي دصفااومروه په منځ کې سعی نه کوي ځکه چې دصفااومروه ترمنځ سعی کول يوځل مشروع دي اونفلې سعی مشروع نه ده ،همدارازپه دی طوافونوکې دي رمل هم نه کوي ځکه چې رمل هم صرف يوځل په هغه طواف کې مشروع ده چې له هغه څخه وروسته سعی وي. (کذافي الهداية:۱/۲۲۳)

(۴۴)ثُمَّ اَخطَبَ قَبلَ يَومِ التَّروِيَةِ بِيَومٍ وَعَلَّمَ فِيهَا الْمَنَاسِکَ (۴۵)ثُمَّ رَخِ يومِ التَّروِيَةِ اِلٰی مِنیٰ ثُمَّ اِلٰی عَرَفَاتٍ بَعْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ يومِ عَرَفَةَ (۴۶)ثُمَّ اَخطَبَ (۴۷)ثُمَّ صَلِّ بَعدَ الزَّوَالِ الظُّهرَ وَالْعَصرَ بِاَذَانٍ وَاِقَامَتَينِ بِشَرطِ الْاِمَامِ وَالْاِحْرَامِ

**ترجمه**:بياخطبه و وايه له اتم تاريخ څخه يوه ورځ وړاندي اووروشيه په هغې کې دحج احکام،بياولاړشه په اتم تاريخ دمنی طرف ته بيادعرفات طرف ته دفجرله لمانځه څخه وروسته ،دعرفات په ورځ (په نهم تاريخ)بياخطبه ولوله ،بيالمونځ اداء کړه له زوال څخه وروسته دظهراوعصرپه يوه اذان اودوو اقامتونوسره په دي شرط چې امام به وي اواحرام به وي.

**تشريح**:(۴۴)ديوم الترويه (اتم ذی الحجه )څخه يوه ورځ وړاندي يعنی داوم په ورځ دي له زوال څخه وروسته امام خطبه ولولي په دي کې دي خلکوته دمنی (په حل کې له مکې مکرمې څخه په يوه فرسخ ديوي قريې نوم دی )اوعرفات (له مکې مکرمې څخه په دري ياڅلورفرسخه په حل کې ديوه غره نوم دی)ته دتللو،په عرفات کې دلمانځه اداء کولو،په عرفات ددريدلواوله عرفات څخه دکښته کيدلو وغيره بيان وکړي ځکه چې نبی کريم ﷺ په اوم ذوالحجه خطبه ويلې وه اوحضرت ابوبکر رضی الله عنه هم په اوم ذوالحجه

خطبه ویلې وه ولی چې له دې خطبې څخه مقصود د مناسکو تعلیم دی اوله اوم تاریخ څخه وروسته ورځ خو په افعال حج د مشغولیدلو ورځ ده لهذا داوم تاریخ خطبه زیاته مفیده او مؤثره وي .

ف: دا خطبه دې له زوال او د ماپښین له لمانځه څخه وروسته وواېي او که يې له زوال څخه وړاندې ولوستله نو مکروه ده کمافی شرح التنویر: (خطب الامام سابع ذی الحجة بعدالزوال و)بعد(صلوة الظهر)وکره قبله (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار: ۲/۱۸۷)

ف: په حج کې درې خطبې مسنون دي، په اوم تاریخ په مکه مکرمه کې، په نهم تاریخ په عرفات کې له جمع بين الصلوتين څخه وړاندې، په یولسم تاریخ په منی کې، د هرد وخطبو ترمنځ دیوې ورځې فاصله وي او دعرفات له خطبې څخه ماسوا په نورو ورځو کې صرف یوه خطبه وي په منځ به جلسه نه کوي ماسوا دعرفات له خطبې څخه باقی دوه خطبې د ماپښين له لمانځه څخه وروسته دي کمافی الشامیة: (قوله اولی خطب الحج الثلاث )ثانیهابعرفة قبل الجمع بین الصلوتین ثالثهابمنی فی الیوم الحادی عشر فیفصل بین کل خطبة بیوم و کلهاخطبة واحدة بلاجلسة فی وسطهاالاخطبةیوم عرفة و کلهابعدماصلی الظهر الابعرفة و کلهاسنة(ردالمحتار: ۲/۱۸۷)

(۴۵)یعنی داتم ذوالحجه د فجر لمونځ دي په مکه کې اداء کړي بیا دې د منی طرف ته ووځي له طلوع لمر وروسته وتل مستحب دي ځکه چې ثابت ده چې نبی کریم ﷺ له طلوع شمس وروسته د منی طرف ته وتلی وو، په منی کې دې پاته شي ترڅو چې د نهم ذی الحجه د فجر لمونځ په منی کې اداء کړي په منی کې شپه تیرول مستحب ده لهذا که څوک په مکه مکرمه کې پاته شي د عرفات په سهار له مکې مکرمې څخه سیده د عرفات لورته ولاړشي وقوف منی ونه کړی نو هم جائزده ولکنه اساء لترک السنة، بیا دې د فجر له لمانځه څخه وروسته دعرفات طرف ته ولاړشي افضل هم دادی، که څوک له طلوع فجر څخه وړاندې ولاړ نو هم جائز دی .

ف: ترویه، له، رویت فی الامر، بمعنی فکرت فیه څخه ده، مروی ده چې حضرت ابراهیم علیه السلام داتم ذی الحجه په شپه خوب ولیدی چې کوم ویونکی واېي چې الله تعالی تاته دخپل زوی دذبح کولو حکم فرمايي کله چې سهار شو نو ده په دې کې تر ماښامه پورې فکر کاوو چې دا خوب د الله تعالی له طرفه ده او که د شيطان له طرفه ده، په دې وجه دې ورځې ته یوم الترویة (په معنی دفکر ورځ )ویل کیږي. په دوهمه شپه یې بیا هم داسې خوب ولیدی نو پوه شو چې دا خوب د الله تعالی له طرفه دی ځکه نو دې ورځې ته یوم عرفات (دپیژندنې ورځ )ویل کیږي، بیا یې په دریمه ورځ خوب ولیدی چې دی خپل زوی ذبح کوي په دې وجه دې ورځې ته یوم النحر (دذبح ورځ )ویل کیږي.

ف: علامه شامی رحمه الله فرمايي چې په دې زمانه کې ډیرپه اتم تاریخ حدود عرفات ته ځي دا غلط دی له سنت څخه خلاف دی او ددې په وجه سره ډیر سنتونه له دوئ څخه پاته کیږي مثلاً په منی کې لمونځ کول، په منی کې شپه تیرول، وغیره فرمايي: واما مایفعله الناس فی هذه الازمان من دخولهم ارض عرفات فی الیوم الثامن فخطامخالف للسنة ویفوتهم بسببه سنن کثیرة منهاالصلوة بمنی والمبیت بهاالخ والخطبة والصلوة قبل دخول عرفات (ردالمحتار: ۲/۱۸۷)

(۴۶)قوله لم اخطب ای لم اخطب خطبتین بعرفة بعدالزوال والاذان قبل الصلوة، یعنی دعرفات په ورځ دې امام له زوال او اذان ظهر څخه وروسته له لمانځه څخه وړاندې دوه خطبې ولولې په کوموکې چې به وقوف عرفات

،وقوف مزدلفه اوله دوئ دواړو څخه واپسي ،رمي جمرات ،قرباني ،سرخريل ،طواف زيارت وغيره احكام ورښايي ځکه چي همدا تفصيل له نبي كريم ﷺ څخه مروي دی .

ف:دامام مالك رحمه الله په نزدبه خطبه له لمانځه څخه وروسته وايي ځکه چي دادوعظ اونصيحت خطبه ده نوداداخترله خطبې سره دمشابهت په وجه له لمانځه وروسته ويل كيږي ،احنافوامام مالك ته ځواب وركړی دی چي له دي خطبې څخه مقصود دمناسكوتعليم دی اوپه مناسكوكي جمع بين الصلوتين هم ده لهذا خطبه بايدله لمانځه څخه وړاندي وي ترڅوپه دي كي دجمع بين الصلوتين طريقه هم ورښايي .

(۴۷)بيادي له خطبې څخه وروسته امام دظهراوعصرلمونځ يوځای په يوه اذان اودوو اقامتونوسره وركړي ځکه چي نبي كريم ﷺ دواړه لمونځونه په يوه اذان اودواقامتونوسره اداء كړي وو ، په دي شرط چي امام يادهغه نائب به موجودوي اولمونځ كونكی به په احرام كي وي .

ف:دجمع بين الصلوتين لپاره دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپنځه شرطونه دي./نمبر۱.دماپښين وخت به وي ./نمبر۲.دعرفات ميدان به وي./نمبر۳.احرام به وي.نمبر۴.بادشاه يادهغه نائب به وي./نمبر۵.دجماعت لمونځ به وي .دصاحبينوپه نزدامام اوجماعت شرط نه دی .نودپنځم شرط په اساس كه چاپه خپل پړاوكي دماپښين لمونځ اداء كړنودده ته جائزنه ده چي دعصرلمونځ دماپښين له لمانځه سره يوځای دماپښين په وخت كي اداء كړي بلكه عصربه په خپل وخت كي اداء كوي ځکه چي دامام صاحب رحمه الله په نزدجمع بين الصلوتين لپاره جماعت شرط نه دی ،حال داچي دصاحبينوپه نزدجماعت شرط نه دی لهذا منفردهم جمع بين الصلوتين كولی شي ځکه چي مقصوددادی چي دوقوف عرفه لپاره زيات وخت پاته شي اوداغرض دمنفردپه حق كي هم ثابت دی ،امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي چي دپه خپل وخت كي دلمانځه داداء كولوفرضيت په نص سره ثابت دی لهذاددي ترك جائزنه دی الاداچي ددي خلاف شريعت واردشوی وي اودلته دشريعت ورودپه دي صورت كي دی چي څوك له امام سره په جماعت باندي لمونځ اداء كړي لهذا له جماعت څخه بغيرپه ددي اجازت نه وي .

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی كمافي الدرالمختار:وقالا لايشترط لصحة العصرالاالاحرام وبه قالت الثلاثة وهو الاظهرشرنبلالية عن البرهان ،وقال ابن عابدين :(قوله وهو الاظهر)لعله من جهة الدليل والافالمتون على قول الامام وصححه في البدائع وغيرها ونقل تصحيحه العلامة قاسم عن الاسبيجابي وقال واعتمده برهان الشريعة والنسفي (الدرالمختارمع الشامية:۲/۱۸۹)، همدا رازقاعده داده چي په متونوكي ذكرشوی قول راجح وي ،همداشان كه يوقول دامام وو اوبل دصاحبينو وونوترجيح به دامام صاحب قول ته حاصله وی كمافي اصول الافتاء:اذاكان احدالقولين مذكورافي المتون والاخر مذكورافي غيرها فالراجح مافي المتون وايضااذاكان احدهماقول الامام والاخرقول صاحبيه فالراجح قول الامام (اصول الافتاء:ص۴۷)

## دوقوف عرفات بيان

(۴۸)ثُمَّ إِلَى الْمَوْقِفِ وَقِفْ بِقُرْبِ الْجَبَلِ (۴۹)وَعَرَفَاتٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ إِلَّا بَطْنَ عُرَنَةَ (۵۰)حَامِدًا مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُلَبِّيًا مُصَلِّيًا دَاعِيًا

ترجمه:بيا(ولاړشه )دموقف طرف ته اوودريږه دجبل رحمت په قرب كي ،اوټول عرفات ددريدلوځای دی مګرنه بطن عرنة ،په داسي حال كي چي حمداوثناء اوتكبيراوتهليل اوتلبيه اودرود اودعاء به وايي .

**تشریح**:(۴۸)قوله ثم الی الموقف ای بعداداء الصلوتين رح الی الموقف ،یعنی کله چې له جمع بین الصلوتین څخه فارغ شې دموقف (په عرفات کې ددریدلو ځای )طرف ته متوجه شه جبل رحمت ته قریب دکعبې طرف ته متوجه ودریږه ځکه چې نبی کریم ﷺ له لمانځه څخه وروسته موقف ته روان شوی وو .

**ف**:باقی په غره ختل لکه څرنګه چې عوام داافضل ګڼي دابې اصله خبره ده بلکه ټول عرفات په حکم کې برابر ده کماقال ابن عابدین :واماصعوده کمایفعله العوام فلم یذکراحدممن یعتدبه فیه فضلیة بل حکمه حکم سائرارض عرفات (ردالمحتار:۲/۱۸۹)

**ف**:وقوف عرفات رکن دی او وخت يې دنهم ذوالحجه له زوال څخه دیوم النحرترطلوع فجرپوري دی البته ټول وخت وقوف کول رکن نه دی بلکه یوګړی دریدل رکن دی اوترغروب افتاب پوري پاته کیدل واجب دي نوکه کوم شخص له غروب شمس څخه وړاندی له حدودعرفات څخه ووځي نوپرده دم لازمیږي الاپه دي صورت کې چې له غروب افتاب څخه وړاندي بیرته واپس راشي ،البته که امام له غروب شمس وروسته ځنډوکړي نوخلک دي ولاړشي ځکه چې له غروب څخه وروسته پاته کیدل دسنت څخه مخالف دي کمافی الشامیة :(قوله واذاغربت الشمس الخ)بیان للواجب حتی لودفع قبل الغروب فان جاوحدودعرفة لزمه دم الاان یعودقبله ویدفع بعده فیسقط خلافالزفر بخلاف مالوعادبعده قبل الغروب ولومکث بعدماافاض الامام کثیرابلاعذراساء ولوابطأ الامام ولم یفض حتی ظهر اللیل افاضوا لانه اخطأالسنة(ردالمحتار:۲/۱۹۱)

(۴۹)عرفات ټول ددریدلوځای دی مګرعرنه نومې وادی ،کومه چې دعرفات په برابري کې دموقف په کین طرف واقع ده چیرته چې شیطان دریدلی وو دریدلوځای نه دی ﴿ لقوله ﷺ عَرَفَاتٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ وَارْتَفِعُوا عَنْ بَطْنِ عُرَنَةَ ﴾ (یعنی عرفات ټول موقف دی هوله وادی عرنه څخه پورته اوسئ ).

(۵۰)قوله حامدامکبرامهللاملبیاالخ ای وقف بقرب الجبل حال کونک حامدامکبرامهللاملبیاالخ ،یعنی په موقف کې تسبیح، تکبیراوتهلیل ووایه ځکه چې ددي اعمالوپه باره کې اثارمروی دي ،اوتلبیه وایه ځکه چې له حضرت فضیل ابن عباس ﷺ څخه مروی ده ﴿ ان رسول الله ﷺ لم يَزَلْ يُلَبِّي حتى رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ ﴾ (یعنی نبی کریم ﷺ تررمی جمرة عقبه پوری تَلبیه ویله )،اودرودشریف وایه ځکه چې درودشریف دقبولیت دعاء لپاره وسیله ده ،اودعاء دي کوي ځکه چې مروی ده چې نبی کریم ﷺ دعرفې په ورځ خپل دواړه لاسونه وغوړول اوددوی غوښتونکې مسکین په څیرېې دعاء کوله ،خلک دي هم دامام قریب ودریږي ترڅودده په دعاء باندي امین ووایې اودامام شاته دي ودریږي ترڅومخ پرقبله وي .

## ددعاء دقبولیت ځایونه

**ف**:دعرفې وقوف کونکوته مستحب ده چې له وقوف څخه وړاندي غسل وکړي ځکه چې داهم دجمعې په شان داجتماع ورځ ده ،اودخپل مورپلار ،اهل وعیال ،قریبانواوهمسایه ګانولپاره دي ښې دعاګاني وکړي ځکه چې داددعاء دقبلیدلو ځای دی علماء لیکې چې په حج کې په پنځه لسوځایونوکې دقبولیت دعاء ډیرامید کیدای شې کمافی نهرالفائق:واعلم ان مواضع استجابة الدعاء ای کثرة رجاء استجابته حصروهافی خمسة عشر موضعافی الحج جمعهافی قولی:

دعاء البرايا يستجاب بكعبة    وملتزم والموقفين كذا الحجر
طواف وسعي مروتين وزمزم    مقام وميزاب جمارک تعتبر
والمراد بموقفين عرفة والمشعر الحرام (النهر الفائق: ۲/۸۳)

(۵۱) ثُمَّ إلَى مُزْدَلِفَةَ بَعْدَ الْغُرُوبِ (۵۲) وَانْزِلْ بِقُرْبِ جَبَلِ قُزَحَ (۵۳) وَصَلِّ بِالنَّاسِ الْعِشَاءَيْنِ بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ (۵۴) ولم تجز المغرب في الطريق (۵۵) ثُمَّ صَلِّ الْفَجْرَ بِغَلَسٍ ثُمَّ قِفْ مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُلَبِّيًا مُصَلِّيًا على النبي صلى الله عليه وسلم دَاعِيًا (۵۶) وَهِيَ مَوْقِفٌ إلَّا بَطْنَ مُحَسِّرٍ

**ترجمه**: بیا د مزدلفې طرف ته ولاړ شه له غروب شمس وروسته، او کښته شه د جبل قزح قریب، او ورکړه خلګو ته دعشاء او مغرب لمونځ په یوه اذان او یوه اقامت سره، او جائز نه دی د مغرب لمونځ په لاره کې، بیا د فجر لمونځ اداء کړه په تیاره کې بیا وقوف وکړه په داسې حال کې چې تکبیر او تهلیل او تلبیه او پر نبی کریم ﷺ درود او خپل رب ته دعاء ګانې کوي، او مزدلفه د دریدلو ځای دی ما سوا له بطن محسر څخه.

**تشریح**: (۵۱) قوله ثم الى مزدلفة اى ثم رح الى مزدلفة، یعنی د نهم ذوالحجې تر لمر لویدلو پورې دې په عرفات کې پاتې شي له غروب شمس وروسته دې امام له خلګو سره یو ځای په وقار او سکون سره مزدلفې ته راشي ځکه چې نبی کریم ﷺ له غروب شمس څخه وروسته روان شوی وو او په خپله سورلی په لاره کې په سکون سره تللو، او په مزدلفه کې دې پړاو وکړي، مزدلفه له زلفی څخه ده د قرب په معنی، نو په مزدلفه کې ځرنګه چې خلک د الله تعالی قرب حاصلوي په دې وجه سره دې ته مزدلفه وایي.

(۵۲) او د هغه غره قریب دې کښته شي په کوم چې میقده (میقده هغه ځای دی په کوم چې به د جاهلیت په زمانه کې اور لګاوو چې په هغه به خلګو رهنمائي حاصلوله) ده کوم ته چې جبل قزح (بضم القاف) ویل کیږي ځکه چې نبی کریم ﷺ د همدې قزح نومې غره قریب پړاو کړی وو.

**ف**: قزح (بضم القاف) د لوړې په معنی سره دی د لوړوالی په وجه سره ده ته قزح ویل کیږي او د باری تعالی له ارشاد (عند المشعر الحرام) څخه همدا غر مراد دی، لفظ قزح د علمیت او عدل په وجه غیر منصرف دی ځکه چې قزح له قازح څخه معدول دی، د جاهلیت په زمانه کې به قریش عرفات ته نه تلل دلته په مشعر حرام کې به یې پړاو کاوو. (کذا فی رد المحتار: ۲/۱۹۱)

(۵۳) مزدلفې ته له راتلو څخه وروسته دې امام خلګو ته د مغرب او عشاء لمونځونه یو ځای د عشاء په وخت کې په یوه اذان او یوه اقامت سره ورکړي، دلته اقامت هم د دواړو لمونځونو دپاره یو دی ﴿لحدیث جابر ﷺ ان النبی ﷺ جمع بینهما باذان واقامة واحدة﴾ (له حضرت جابر ﷺ څخه روایت دی چې نبی کریم ﷺ مغرب او عشاء دواړه په یو اذان او یوه اقامت سره جمع کړل) همدا راز په دې وجه هم ځرنګه چې د عشاء لمونځ په خپل وخت کې اداء کیږي لهذا د ده لپاره د مستقل اقامت ضرورت نشته، باقي په عرفات د عصر لمونځ ځرنګه چې له وخت څخه وړاندې اداء کیدو ځکه نو هلته د ده لپاره مستقل اقامت کیدو.

(۵۴) که چا په لاره کې د ماښام لمونځ اداء کړ نو د طرفینو په نزد جائز نه دی ځکه چې نبی کریم ﷺ اسامه بن زید ﷺ ته فرمایلي وو ﴿الصلاة أمامک﴾ (یعنی لمونځ ستا مخته دی) مراد دادی چې د لمانځه وخت ستا مخته یعنی په مزدلفه کې دی تر څو جمع بین الصلوتین ممکن وي نو له حدیث شریف څخه معلومه شوه چې د حاجیانو په حق کې د مغرب وخت له غروب شمس څخه نه شروع کیږي بلکه وروسته د اخلیږي او لمونځ

له خپل وخت څخه وړاندې اداء کول جائزنه دی ،حال داچې دامام ابویوسف رحمه الله په نزد جائزمګرخلاف سنت ده.

ف:دطرفینو قول راجح دی کماقال الشیخ عبدالحکیم الشهید:والصحیح الماهو قول الطرفین ای امام ابوحنیفة ومحمدلکن لایخفی على اولى النظران المرادمن عدم الجوازعدم الحل لاعدم الصحة وبه علی هذه الدقیقة ابن الهمام فی الفتح وابن النجیم فی البحر وقداخطاصاحب ردالمحتار حیث ابقاعدم الجوازعلی معناه المتبادریعنی عدم الصحة وایضالایخفی ماقالواان هذاالحکم اعنی عدم الجواز مقیدبمااذاذهب الی المزدلفة من طریقهااما اذاذهب الی المکة جازله ان یصلی المغرب فی الطریق فلاتوقف فی ذالک وهذه فائدة جلیلة(هامش الهدایة: ۱/۲۲۹)

(۵۵)یعنی دلسم ذوالحجه شپه دې په مزدلفه کې تیره کړي اوچې څرنګه سهارشي نوامام دې په تیاره کې خلګوته دفجر لمونځ ورکړي ولې چې له ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چې نبی کریم ﷺ په دې ورځ دسهارلمونځ په تیاره کې اداء کړ،همداراز دفجرلمونځ په تیاره کې داداء کولو په صورت کې دوقوف لپاره ډیروخت پاته کیږي لکه څرنګه چې دوقوف عرفات دپاره دتقدیم عصرحکم وو ،له لمانځه څخه وروسته دې امام اوخلک وقوف مزدلفه وکړي وقوف مزدلفه واجب ده.دوقوف مزدلفې وخت له طلوع فجرڅخه ترطلوع شمس پورې دی که څه هم یوګړی وي دلته دې هم ښې دعاء ګانې وکړي اوتکبیر، تهلیل،تلبیه اودرودشریف دې ووایې ولې چې نبی کریم ﷺ په مزدلفه کې ددعاء په حال وقوف کړی وو.

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزدوقوف مزدلفه رکن دی لقوله تعالی ﴿ فَإِذَا أَفَضْتُم مِّنْ عَرَفَاتٍ فَاذْكُرُوا اللَّهَ عِندَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ﴾(یعنی کله چې تاسې له عرفات څخه واپس شی نوله مشعرحرام سره دالله تعالی ذکروکړئ )له مشعرحرام څخه مرادمزدلفه ده .داحنافودلیل دادی چې نبی کریم ﷺ په خپل اهل خانه کې ضعفاء له وقوف مزدلفه څخه بغیرپه شپه کې وختې ولیږدول حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمایې چې زه هم په دې ضعفاؤکې وم .نوکه وقوف مزدلفه رکن وای نونبی کریم ﷺ به خپل اهل خانه له وقوف کولو څخه بغیرمخته نه لیږدول ځکه چې رکن دعذرپه وجه سره هم پرېښودل جائزنه دي .

(۵۶)قوله وهی موقف الابطن محسرای المزدلفة کلهاموقف الابطن محسر،یعنی مزدلفه ټوله موقف (ددریدلوځای )دی مګرپه محسرنومې وادی (محسردمزدلفې په کینې طرف کې له مزدلفې څخه کښته واقع ده چیرته چې شیطان دریدلی وو)کې دې نه دریږي ﴿ لقوله ﷺ المزدلفة کلهاموقف وارتفعواعن وادی محسر﴾(یعنی مزدلفه ټوله موقف ده هوله وادی محسرڅخه لوړاوسئ )،مکبراموهللامصلیاملبیاداعیا،احوال مترادفه یامتداخله دي په ثم قف کې له ضمیرمستترڅخه .

(۵۷)ثُمَّ إِلَى مِنًى فَارْمِ جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ مِنْ بَطْنِ الْوَادِي بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ كَحَصَى الْخَذْفِ (۵۸)وَكَبِّرْ بِكُلِّ حَصَاةٍ(۵۹)وَاقْطَعِ التَّلْبِيَةَ بِأَوَّلِهَا(۶۰)ثُمَّ اذْبَحْ(۶۱)ثُمَّ احْلِقْ أَوْ قَصِّرْ وَالْحَلْقُ أَحَبُّ وَحَلَّ لَكَ غَيْرُ النِّسَاءِ

**ترجمه**:بیاولاړشه دمنی طرف ته له رڼاکیدلو څخه وروسته ،نورمی وکړه دجمره عقبه له بطن وادی څخه په اوو ډبروسره لکه دکودروتکري ،اوتکبیروو ایه له هرې ډبرې سره ،اوقطع کړه تلبیه په اوله ډبره ،بیاقربانی وکړه ،بیاسروخریه یایې کوچنی کړه اوخریل افضل دی اوحلال شول ستالپاره هرشی ماسواله ښځو.

تشریح: (۵۷) قوله ثم الی منی ای ثم رح من مزدلفة الی منی، یعنی له وقوف مزدلفه کولو څخه وروسته چې کله ښه روښانه شي له طلوع شمس څخه وړاندې دې امام سره له خلګو په تکبیر، تهلیل او تلبیه ویلو سره منی ته راشي ځکه چې نبی کریم ﷺ له طلوع شمس څخه وړاندې روان شوی وو، او په لاره کې یې تکبیر، تهلیل او تلبیه ویله.

## درمی جمرات بیان

(۵۸) دلته دې جمره عقبه له بطن وادی څخه وویلي د جمرې د وېشتلو پر وخت داسې ودرېږه چې بیت الله ستا کیڼ لور ته او منی ستا ښي لور ته وي او د کودرو په شان په اوو ډبرو سره یې وله ﴿لحدیث سلیمان بن عمرو بن الاحوص عن امه قالت رأیت رسول الله ﷺ یرمی الجمرة من بطن الوادی وهو راکب یکبر مع کل حصاة وفی حدیث ابن مسعود ﷺ سبع حصیات﴾ (یعنی نبی کریم ﷺ جمره عقبه له بطن وادی څخه په دې حال کې وېشتله چې په سورلی باندې سپور وو او له هرې ډبرې سره یې تکبیر وایه او د ابن مسعود ﷺ په حدیث کې د اوو ډبرو ذکر دی). او ډبرې دې د کودرو د ټکرو په شان وي ﴿لقوله ﷺ علیکم بحصی الخذف لایؤذی بعضکم بعضا﴾ (یعنی د کودرو ټکرې را اخلئ او ځیني له تاسو دې ځینو نورو ته زحمت نه ورکوي).

ف: تر ټکرو کوچنی یا لویې ډبرې وېشتل هم جائز دي ځکه چې مقصود (یعنی رمی جمره) حاصله شوه مګر چې دومره لویې نه وي چې له هغوی څخه چاته د تکلیف رسیدلو خطره وي کما فی الشامیة: (والمختار انها مقدار الباقلاء ای قدر الفولة وقیل قدر الحمصة او النواة او الانملة قال فی النهر هذا بیان المندوب واما الجواز فیکون ولو بالا کبر مع الکراهة. (ردالمحتار: ۲/۱۹۴)

ف: د رمی طریقه داده چې ډبره د خپلې بتې په شاکنیږدي او د شهادت د ګوتې په کومک سره یې وارکړي او د رمی کونکی او د ډبرې د لوېدلو ترمنځ لږ ترلږه باید پنځه ګزه فاصله وي ځکه چې له دې څخه په لږ فاصله کې وېشتل نه بلکه اچول دي حال دا چې سنت وېشتل دي اچول نه دي، لیکن که یو چا ډبره واچوله نو هم کافی ده مګر د خلاف سنت په کولو سره ده ښه کار و نه کړ کما فی شرح التنویر: (سبع حذفا) بمعجمتین ای برؤس الاصابع ویکون بینهما خمسة الذرع ,قال ابن عابدین: (قوله خمسة اذرع) ای او اکثر ویکره الاقل لباب ,لانه مادونه وضع فلایجوز اوطرح فیجوز لکنه مسئ لمخالفته السنة (ردالمحتار: ۲/۱۹۵)

(۵۹) د هرې ډبرې له وېشتلو سره دې تکبیر وایي، لماروینا من حدیث سلیمان بن عمرو ابن الاحوص عن امه. او که چا د تکبیر پرځای تسبیح وویله نو هم جائز ده ولی چې له تکبیر څخه مراد ذکر دی، له ډبرو وېشتلو څخه وروسته دې له جمرې سره نه درېږي ځکه چې نبی کریم ﷺ له دې سره توقف نه دی کړی.

(۶۰) په جمره عقبه باندې له اولې ډبرې وېشتلو سره دې تلبیه قطع کړي ولې چې له حضرت فضل ابن عباس ﷺ څخه مروی ده ﴿لم یزل النبی صلی الله علیه وسلم یلبی حتی رمی جمرة العقبة﴾ (یعنی نبی کریم ﷺ تر رمی جمره عقبه پورې تلبیه ویله)، همدارازله حضرت جابر ﷺ څخه روایت دی چې نبی کریم ﷺ جمرې عقبې ته د اولې ډبرې د وېشتلو په وخت تلبیه قطع کړې وه.

ف: درمى وخت له طلوع فجرڅخه ترغروب شمس پورې دى له طلوع فجرڅخه وړاندې رمى صحيح نه ده، له طلوع فجرڅخه ترزوال پورې مستحب ده له زوال څخه ترغروب شمس پورې مباح ده اوله غروب شمس څخه ترطلوع فجرپورې مؤخركول مكروه ده كمافى الدرالمختار: ووقته من الفجرالى الفجرويسن من طلوع ذكاء لزوالها ويباح لغروبها ويكره للفجر، وقال ابن عابدين: (قوله ووقته) اى وقت جوازه اداءً من الفجراى فجرالنحرالى فجراليوم الثانى قال فى البحرحتى لواخره حتى طلع الفجرفى اليوم الثانى لزمه دم عنده خلافالهما ولورمى قبل طلوع فجرالنحرلم يصح اتفاقا (الدرالمختارمع الشامية: ١٩٦/٢). دامام شافعى رحمه الله په نزدله نصف ليل څخه وروسته جائزده. زمونږدليل دادى چې نبى كريم ﷺ حضرت ابن عباس رضى الله عنهما اوداهل بيت ضعفاؤ ته وفرمايل چې له سهارڅخه وړاندې رمى مه كوئ، اوپه يوبل روايت كې دي چې له طلوع شمس څخه وړاندې رمى مه كوئ نوله اول روايت څخه وخت جوازاوله دوهم روايت څخه وخت افضل معلوميږي.

ف: په حج ترټولوسخته مرحله درمى جمارو ي دهجوم اوازدهام (گهي گوني) په وجه سره دترپښولاندې كيدلوخطره وي، په دې حالاتوكې ددخبرې ضرورت دى چې درمى دوختونوتفصيلات په ښه طريقه سره زده كړاى شي اوهغه دادي (١) په لسم دذالحجې كې درمى مستحب وخت له طلوع شمس څخه بياترزوال پورې دى، بې له كراهته جائزوخت له زوال شمس څخه ترغروب شمس پورې دى، له كراهته تنزيهى سره دجوازوخت له طلوع فجرڅخه ترطلوع شمس پورې اوله غروب شمس څخه ترطلوع فجردې يولسم ذى الحجې دى. مگرداكراهة تنزيهى هم هغه وخت دى چې دعذرپه وجه سره په رمى كې تاخيرنه وي شوى ......په موجوده حالاتوكې دهجوم كثرت اوځان خطره په خپل ځاى درمى دتاخيرلپاره ديومعقول عذردرجه لري. اوپه يولسم اودولسم ذى الحجه كې مسنون وخت له زوال شمس څخه ترغروب شمس پورې دى اودجوازوخت له غروب شمس څخه ترطلوع دفجرپورې دى، دامام ابوحنيفه رحمه الله ديوه قول مطابق په يولسم اودولسم ذى الحجه له زوال څخه وړاندې هم رمى كول جائزدى، نوددې تفصيلاتوپه روښنې كې په ښځو، اوسپين ږيرواوكمزورو خلگودوخت له رعايت څخه په فائده حاصلولبايدشپې وخت رمى وكړاى شي، اوكه كوم حاجى دومره معذوراو كمزوروي چې دشپې پروخت هم رمى كول دده لپاره ممكن نه وي نوبيادنوروائمه و اودځينواحنافودصراحت مطابق دنيابة رمى گنجائش شته. (جديدفقهى مسائل: ٢٦٠/١)

(٦١) قوله ثم الذبح اى بعدالفراغ من الرمى الذبح، يعني بياكه يې خوښه وه نوذبح دې وكړي ﴿لحديث جابر رضى الله عنه أَنَّه صلى الله عليه وسلم لَمَّا رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ انْصَرَفَ إِلَى الْمَنْحَرِ فَنَحَرَ بِيده ثَلَاثًا وَسِتِّينَ بَدَنَةً وَأَمَرَ عَلِيًّا فَنَحَرَ ما غَبَرَ وَأَشْرَكَهُ وكان ماغبر سبعاوثلاثين﴾ (يعني نبى كريم ﷺ له رمى جمره عقبه څخه وروسته دمنحرطرف ته راغى اوپه خپل لاس سره يې درې شپيته اوښان ذبح كړل اودباقى دذبح كولويې حضرت علي رضى الله عنه ته حكم وكړاوهغه اوه ديرش اوښان وو) څرنگه چې داحج افراددى لهذاداقربانى واجب نه ده بلكه تطوع ده.

(٦١) بيادې پوره سروخرېي يادې كوچنى كړي يادې لږترلږربع سروخرېي يادې كوچنى كړي اوخرېيل افضل دي ﴿لقوله ﷺ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِلْمُحَلِّقِينَ قالوا يا رَسُولَ اللهِ وَلِلْمُقَصِّرِينَ قال اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِلْمُحَلِّقِينَ قالوا يا رَسُولَ اللهِ وللمقصرين قال اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِلْمُحَلِّقِينَ قالوا يا رَسُولَ اللهِ وَلِلْمُقَصِّرِينَ قال وَلِلْمُقَصِّرِينَ﴾ (يعني نبى كريم ﷺ دسرخرېيونكو دپاره درې ځله درحمت دعاء وكړه اودمقصرينولپاره يو ځل)، همدارازپه دې وجه سره هم چې الله تعالى په قرآن

مجیدکې محلقین له مقصرینو څخه وړاندې ذکرکړی دی ،همدارازحلق په صفائي حاصلوکې دقصرپه نسبت اکمل دی.

فی بابدیادوساتل شي چې دقصرپه صورت کې دګوتوتربندونو کم پرې نه کړي ،وهذا التقدیرمروی عن ابن عمر (یعنی دامقدارله حضرت ابن عمر څخه مروی دی )،دټول سرویښتان پرې کول مندوب دي اودیوې ربعې په قدر واجب دي ،اودیک پرسربلیدتیرول واجب دي کمافی شرح التنویر:(ثم قصر)بان یاخذمن کل شعرة قدرالانملة وجوبا وتقصیرالکل مندوب والربع واجب ویجب اجزاء الموسی علی الاقرع ،قال ابن عابدین :(قوله ویجب اجراء الموسی علی الاقرع)هوالمختارکمافی الزیلعی والبحروالباب وغیرهاوقیل استحبابا وقیل استنانا وهوالاظهر(الدرالمختار:۲/۱۹۷)

(۶۲)له حلق یاتقصیرڅخه وروسته دحاجی لپاره داحرام له ممنوعاتوڅخه هرشی حلال شول ماسواله ښځې سره جماع اودجماع دواعی چې دالاتراوسه جائزنه دي ﴿ لقوله ﷺ اِذَا رَمَيْتُمْ وَذَبَحْتُمْ فَقَدْ حَلَّ لَكُمْ كُلُّ شَيْءٍ اِلَّا النِّسَاءَ ﴾ (یعنی کله چې تاسې رمی اوذبح وکړی نوستاسې لپاره هرشی حلال شوماسواله ښځوڅخه).

(۶۳)ثُمَّ اِلٰى مَكَّةَ يَوْمَ النَّحْرِ اَوْ غَدًا اَوْ بَعْدَهُ فَطُفْ لِلرُّكْنِ سَبْعَةَ اَشْوَاطٍ (۶۴)بِلَا رَمَلٍ وَسَعْيٍ وَاِنْ قَدَّمْتَهُمَا وَاِلَّا فَعَلَا وَحَلَّ لَكَ النِّسَاءُ (۶۵)وَكُرِهَ تَاخِيْرُهُ عَنْ اَيَّامِ النَّحْرِ (۶۶)ثُمَّ اِلٰى مِنًى فَارْمِ الْجِمَارَ الثَّلَاثَ فِي ثَانِي النَّحْرِ بَعْدَ الزَّوَالِ بَادِئًا بِمَا يَلِي الْمَسْجِدَ ثُمَّ بِمَا يَلِيْهَا ثُمَّ بِجَمْرَةِ الْعَقَبَةِ وَقِفْ عِنْدَ كُلِّ رَمْيٍ بَعْدَهُ رَمْيٌ (۶۷)ثُمَّ غَدًا كَذٰلِكَ (۶۸)ثُمَّ بَعْدَهُ كَذٰلِكَ اِنْ مَكَثْتَ

**ترجمه**:بیاراشه مکې مکرمې ته په لسم تاریخ یایولسم تاریخ اویادولسم تاریخ نوطواف رکن وکړه اوه شوطه ،بغیرله رمی اوسعي څخه که دي دواړه وړاندي کړي وو که نه نو اوس یې وکړه اوحلالې شوي ستالپاره ښځې ،اومکروه ده ددي تاخیرله ایام نحرڅخه ،بیاولاړشه دمنی لورته اوویله دري سره جمرې په یولسم تاریخ له زوال څخه وروسته په داسې حال کې چې شروع به کوي په هغه سره کومه چې دمسجد طرف ته ده بیاهغه کومه چې له دي سره متصله ده بیاجمرهٔ عقبه اوودریږه له هرهغه رمې څخه وروسته چې له هغې وروسته رمی وي ،بیاصباهمداشان وکړه ،بیاله دي څخه وروسته هم همداشان وکړه که ته پاته شوي.

## دطواف زیارت بیان

**تشریح**:(۶۳)قوله ثم الی مکة ای ثم رح الی من منی الی مکة ،یعنی له ذبح اوحلق څخه وروسته دي حجاج په همدي ورځ یعنی په لسم دذی الحجې یاپه یولسم اویاپه دولسم مکې مکرمې ته راشي مګراقفضل لسم ذی الحجه ده .په مکه مکرمه کې دي دبیت الله اوه شوطه طواف وکړي (دي ته طواف زیارت ،طواف افاضه اوطواف یوم النحرویل کیږي )ځکه چې مروی ده چې نبی کریم ﷺ چې کله سروخرییونومکې مکرمې ته یې تشریف راوړی اودبیت الله طواف یې وکړبیاواپس منی ته راغی اوپه منی کې یې دماپښین لمونځ اداء کړ،داطواف رکن دی ولې چې دباری تعالی په ارشاد ﴿ ولیطوفوا بالبیت العتیق ﴾ (یعنی بنده ګان دي دبیت الله طواف وکړی )دهمدي حکم ورکړل شوی دی.

(۶۴)قوله بلارمل وسعی الخ ای طف للرکن سبعة اشواط بلارمل وسعی الخ ،یعنی که په طواف قدوم کې حاجی رمل اوسعی بین الصفاوالمروه کړي وي نواوس دي په دي طواف کې رمل اوله هغه څخه وروسته سعی بین

الصفا والمروه نه کوي ولی چې سعی یوځل له کوم طواف څخه واجب ده دوهم ځل جائزنه ده اورمل صرف په هغه طواف کې مشروع ده چې له هغه څخه وروسته سعی وي .اوکه په طواف قدوم کې یې رمل اوسعی بین الصفاوالمروه نه وي کړي نواوس دي په طواف زیارت کې وکړي ،له دي طواف څخه وروسته حاجی ته ښځې هم حلالیږي ځکه چې منع دحج په وجه وه اوحج په طواف زیارت باندي مکمل شو.

ف:دابایدیادوساتل شې چې دښځوحلال والی دطواف په وجه سره نه ده بلکه دحلق سابق په وجه سره ده ولی چې محلل حلق دی طواف نه دی ،هودحلق دااثرله طواف څخه وروسته ښکاره کیږي لکه څرنګه چې دطلاق رجعی اثرله عدة څخه وروسته ښکاره کیږي نوکله چې ده طواف وکړنودده لپاره ښځې حلالې شوي.

(۶۵)طواف زیارت له ددي دریوورځو(یعنی لسم ،یولسم اودولسم ذوالحجه)څخه بلاعذر مؤخرکول مکروه تحریمې دی ولی چې قربانی یعنی ذبح کول په دي ایاموسره موقته ده نوطواف زیارت به هم په دي ایاموموقت وي ځکه چې الله تعالی طواف پرذبح باندی عطف کړی دی کمافی قوله تعالی ﴿ فکلوامنهاواطعموا البائس الفقیرثم لیقضواتفثهم ولیوفوانذورهم ولیطوفوا بالبیت العتیق ﴾ ،نوکه یې طواف له ایام نحرڅخه مؤخرکړنودامکروه تحریمې دی اودترک واجب په وجه سره پرده دم لازم دي کمافی الدرالمختار:(فان اخره عنها)ای ایام النحرولیالیهامنها(کره)تحریما(ووجب دم)لترک الواجب(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲/۱۹۹)

ف:طواف زیارت په ایام نحرپسې موقت دی لهذادتاخیرپه صورت کې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددم لازمیږي، دصاحبینوپه نزدهیڅ شی نه لازمیږي ،البته حائضه اونفاسه ښځه دعذرپه وجه له دي حکم څخه مستثنی ده چې هغه له دي ورځوڅخه وروسته بلاکراهته طواف کولی شې ،دامام صاحب قول راجح دی لماقال الدرالمختار:اواخرالحاج الحلق اوطواف الفرض عن ایام النحرلتوقتهمابهااوقدم نسکاعلی اخر،وقال ابن عابدین:(قوله لتوقتهما)ای الحلق وطواف الفرض بهاای بایام النحرعندالامام وهذاعلة لوجوب الدم بتاخیرهماقال فی شرنبلالیة وهذااذاکان تاخیرالطواف بلاعذرحتی لوحاضت قبل ایام النحرواستمربهاحتی مضت لاشئ علیها(الدرالمختارمع الشامیة:۲/۲۲۶)

(۶۶)قوله ثم الی منای ثم یرجع من مکة الی منی ،یعنی له طواف زیارت څخه له فراغته وروسته دي بیرته منی ته ولاړشي په مکه مکرمه کې دشپه نه تیروي په منی کې دي اقامت وکړي نوکله چې په یولسم تاریخ زوال وشي نودري سره جمري دي وویلې ،سنت داده چې کومه جمره مسجدخیف ته نژدي ده په هغې دي شروع وکړي په اووډبرودي وویلې اوله هري ډبري سره دي تکبیروایې له ویښتلووروسته دي ودریږي اودعاء دي وکړي ،بیاچې دي ته کومه قریبه جمره ده هغه دي په همدي شان سره په اوو ډبروویلې اوپه اخرکې دي ودریږي اودعاء دي وکړي ،بیادي جمره عقبه په همدي شان سره وویلې مګرله دي وروسته دي نه دریږي﴿ لحدیث عائشة رضي الله عنها قالت أفاض النبي صلی الله علیه وسلم من یَوْمِهِ حین صلی الظُّهر ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مِنًى فَمَكَثَ بِهَا لَيَالِيَ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ يَرْمِي الْجِمَارَ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ كُلَّ جَمْرَةٍ بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ مع كل حصاةٍ وَيَقِفُ عِنْدَ الأُولَى وَالثَّانِيَةِ فَيُطِيلُ الْمَقَامَ وَيَتَضَرَّعُ وَيَرْمِي الثَّالِثَةَ وَلاَ يَقِفُ عِنْدَهَا ﴾(یعنی نبی کریم ﷺ دعیدالاضحی په ورځ په اخرکې طواف وکړکله چې یې دظهرلمونځ اداء کړبیایې دتشریق په ورځوکې په منی کې قیام وفرمایوهره جمره به یې په اووډبروسره ویښتله دزوال پروخت اوله هري ډبري سره به یې تکبیروایه له اولنی اودوهمې جمري سره تردیره پوري ودریدواوپه زړاسره یې دعاء وکړه اوددریمې جمري له ویښتلوسره یې قیام نه کاووه ددي شاوخوا).

ف: وقف عند كل رمى بعده رمى، څخه مصنف مصنف ﷫ هم دا بيان كړى دى چې له اولنيو دوو جمرو وپښتلو څخه وروسته دي ودرېږي مګرله جمرې عقبې څخه وروسته دي نه درېږي لمامر.

ف: په يولسم او دولسم تاريخ باندي د رمى جمار وخت له زوال څخه وروسته شروع كيږي او د راتلونكې ورځې ترطلوع شمس پوري وي او وخت مسنون به دي دووو رځوكې له زوال څخه ترغروب افتاب پوري دى او له غروب افتاب څخه بيا ترطلوع فجرپوري مكروه وخت دى كمافى الشامية: قال فى اللباب وقت رمى الجمار الثلاث فى اليوم الثانى والثالث من ايام النحر بعد الزوال فلايجوز قبله فى المشهور وقيل يجوز والوقت المسنون فيهما يمتد من الزوال الى غروب الشمس ومن الغروب الى الطلوع وقت مكروه (ردالمحتار: ۲/ ۲۰۱)

ف: له اولنيو دوو جمرو وپښتلو وروسته دي دعاء وكړي او لاسونه دي پورته كړي ﴿ لقوله ﷺ لا ترفع الأيدي إلا في سبع مواطن وذكر من جملتها عند الجمرتين ﴾ (يعنى لاسونه دي نه پورته كيږي مګر په اوو ځايونوكې او له دي څخه يې ددوو جمرو وروسته پورته كول ذكر كړل) او مناسب ده چې په دي موقع باندي د ټولو مسلمانانو لپاره استغفار وكړي ﴿ لان النبى ﷺ قال اللهم اغفر للحاج ولمن استغفر له الحاج ﴾ (يعنى اى الله تعالى حاجى ته مغفرت وكړي او حاجى چې د چا پاره د مغفرت دعاء وكړي هغه ته هم مغفرت وكړي).

(۶۷) په راتلونكې ورځ يعنى په دولسم تاريخ دي بيا دري سره جمري په هم دي شان سره وويلي.

(۶۸) اوس كه د حاجې مكې مكرمې ته د تللو تلوار وي نو د ديارلسم تاريخ له طلوع فجر څخه وړاندي تللى شي ليكن كه د ديارلسم تاريخ (كوم چې د ايام نحر څلورمه ورځ ده) ترفجرپوري پاته شو او د پاته كيدل افضل هم دى (اقتداء بفعله ﷺ) نو په ديارلسم تاريخ دي هم دري سره جمري وروسته له زوال څخه وويلي او مكې مكرمې ته دي ولاړشي لقوله تعالى (فمن تعجل فى يومين فلا اثم عليه ومن تاخر فلا اثم عليه) (يعنى كوم كس چې تلوار وكړي په دووو رځوكې نو پر ده هيڅ ګناه نشته او څوك چې تاخير وكړي نو پر هغه هم هيڅ ګناه نشته).

ف: د مصنف ﷫ په عبارت ثم غدا كذالک، كې لفظ د ثم عاطفه ده او غدا كذالک معطوف دى په الجمار الثلث فى ثانى النحر باندي اى ثم ارم غدا كذالک، او په ثم بعده كذالک كې هم ثم عاطفه ده، اى ثم ارم بعده كذالک.

(۶۹) ولو رمیت فی الیوم الرابع قبل الزوال صح (۷۰) وكل رمى بعده رمى فارم ماشيا والا فراكبا (۷۱) وكره ان تقدم ثقلک وتقيم بمنى للرمي (۷۲) ثم الى المحصب (۷۳) ثم طف للصدر سبعة اشواط (۷۴) وهو واجب الا على اهل مكة (۷۵) ثم اشرب من زمزم والتزم الملتزم وتشبث بالاستار والتصق بالجدار

ترجمه: او كه تا رمى وكړه په څلورمه ورځ (يعنى په ديارلسم تاريخ) له زوال څخه وړاندي نو صحيح ده، او هر هغه رمى چې له هغې څخه وروسته رمى شته نو هغه رمى پياده كوه كه نه نو د سورتيا په حال كې، او مكروه ده دا چې ته وړاندي ولېږي خپل سامان مكې ته او ته پاته شې په منى كې د رمى د پاره، بيا د محصب لورته ولاړشه، او طواف صدر وكړه اوه شوطه، او دا واجب دى مګر نه په اهل مكه باندي، بيا د زمزم اوبه وڅښه او ونښله له ملتزم سره او د كعبې پردي ونيسه او ځان ونښلوه له ديوال سره.

**تشريح**:(۶۹)ليكن كه په څلورمه ورځ (يعنى ديارلسم ذوالحجه )له زوال څخه وړاندي جمرات ويشتل نوهم دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد جائزده مع الكراهة التنزيهة ځكه چې كله بالكل ترك جائزدى نو وروسته وړاند ي كول خوپه طريقه اولى سره جائزدى .البته په يولسم اودولسم تاريخ رمى له زوال څخه وړاندي جائزنه ده ځكه چې په دي دووورځوكي ترك رمى جائزنه ده نوتقديم هم جائزنه ده،مګرد صاحبينوپه نزدپه څلورمه ورځ هم رمى له زوال څخه وړاندي جائزنه ده هغوئ يې په داونورو ورځو قياسوي.

**ف**:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دى كمافى الدرالمختار:وان قدم رمى فيه اى فى اليوم الرابع على الزوال جاز قال ابن عابدين :(قوله جاز)اى صح عندالامام استحسانامع الكراهة التنزيهية وقالالايصح اعتبار بسائر الايام (الدرالمختار مع الشامية:۲/۲۰۰)

(۷۰)دكومې رمى څخه وروسته چې رمى وي لكه دجمره اولى اوجمره وسطى رمى نوداپياده افضل اومستحب ده ځكه چې مروى ده چې حضرت ابن عمر رضى الله عنه په دعيدالاضحى په ورځ جمره عقبه دسورتياپه حال اوباقى دوه پياده ويښتلې اودا خبربه يې وركاووچې نبى كريم صلى الله عليه وسلم په دي شان سره رمى كوله ،همدارازله دي وروسته به درېږي نوكه دسورتياپه حالت كې رمى وكړى نودابه ددريدونكودپاره تكليف وي .اودكومې رمى څخه وروسته چې رمى نشته لكه داختريه ورځ دجمره عقبه رمى اواخري رمى په باقى دريوورځوكې نودادسورتيابه حالت كې افضل دي.

**ف**:دځينوحضراتورايه داده چې په دي زمانه كې پياده رمى كول ښه دي ولى چې داتضرع اوتواضع ته ډيرقريب ده، دمصنف رحمه الله عبارت ماشياوالاراكباحال دى دفارم له ضميرمستترڅخه اى فارم حال كونك ماشياوالافارم حال كونك راكبا.

**ف**:ابراهيم ابن الجراح فرمايي چې زه دحضرت امام ابويوسف رحمه الله خواته په هغه وخت كې ورغلم چې پرده بي هوشې راغلي وه بياپه هوش كې راغى زه چې وليدم ويې ويل اى ابراهيم ستاڅه رأيه ده چې حاجى به رمى جمرات پياده كوي اوكه دسورتياپه حال كې ،ماوويل :پياده ،ده وفرمايل: صحيح نه ده ، ماوويل :دسورتياپه حالت كې ،ده وفرمايل :داهم صحيح نه ده ،ماوويل :نوامام صاحب څه فرمايې ؟ ده وفرمايل :له كومې رمى څخه وروسته چې رمي وي هغه دي پياده وشي اوله كومې رمى څخه وروسته چې رمى نه وي هغه دي دسورتياپه حالت كې وشي ،بيازه دده خواڅخه ولاړم له راوتلوسره سم ما دخلكودژړاوو اوازونه واوريدل اوماته وويل شول چې امام صاحب له دارفانى څخه رخصت شوما په داسې حال كې دده په حرص علم باندي ډيرتعجب وكړ.

(۷۱)مګردامكروه ده چې په دي ورځوكې په خپله خوپه منى كې درمى جمرات دپاره پاته شي اوخپل سامان مكې ته وليږدوي ولى چې مروى ده چې حضرت عمر رضى الله عنه له دي څخه منع كوله اوچاچې به داشان كول هغه ته به يې تنبيه وركوله، همدارازشان دسامان په ليږدولوكې فارغ البالى نه راځې بلكه زړه به يې ذوري مشغول وي.

**ف**:كه كوم كس درمى په شپوكې شپه په منى كې تيره نه كړي نودامام شافعى رحمه الله په نزدځرنګه چې شپه په منى كې تيرول واجب ده په دې وجه پردي كس دم لازميږي .زموږپه نزدپه منى كې شپه تيرول سنت ده لهذاپرده دم نه لازميږي زموږدليل دادى چې په منى كې شپه تيرول بنفسه مقصودنه ده بلكه په دي وجه چې

په راتلونکې ورځ کې ده ته رمی اسانه وي لهذا ثابته شوه چې په منی کې شپه تیرول د حج له افعالو څخه نه ده نو ددې په ترک سره به هیڅ هم نه واجبیږي.

(۷۲)قوله ثم الی المحصب ای ثم رح من منی الی المحصب ،یعنی کله چې له رمی جمرات څخه فارغ شې نومکې مکرمې ته دراتلو په حال کې دي په محصب (بضم المیم وتشدید الصاد دتفعیل له باب څخه داسم مفعول پروزن ده یعنی وادی ابطح کومې ته چې وادی بطحاء او خیف بنی کنانه هم ویل کیږي )کې کښته شې دلته کښته کیدل سنت دی ولی چې نبی کریم ﷺ قصدا دلته کښته شوی وو.

ف:پرمحصب دکښته کیدلو اصل وجه داده چې نبی کریم ﷺ چې کله په شروع شروع کې مشرکین قریشو ته دعوت توحید ورکړنو هغوئ په دي ځای کې له بنوهاشم اوبنوالمطلب سره دهرقسم تعلقاتو پر قطع کولو باندې قسمونه وخوړل اوپردي یې عهدنامه ولیکله او په کعبة الله کې یې راوځړوله په کومه چې قسم قسم باطلې اودکفرخبري وي ،نو ابوطالب مسلمانان اودبنوهاشم خاندان له ځان سره بوتلل اوپه شعب ابوطالب کې یې اوسیدل شروع کړل دري کاله بعدنبی کریم ﷺ ته معلومه شوه چې عهدنامه چنجیانو خوړلې ده ماسواله هغو ځایونو چې په هغه کې دالله تعالی ذکرشوی دی نبی کریم ﷺ ابوطالب ته خبرورکړ ابوطالب قریش پري خبرکړل هغوئ ولیدل چې وقعی همداسې شوي وو ،بیاله فتح مکې څخه وروسته نبی کریم ﷺ دخپل حج په موقع قصدا دلته کښته شوی وو اومقصداداوو چې مشرکینو ته دالله ﷻ کاریګري ورښکاره کړي چې پرون تاسې پردي ځای څه عهدا وپیمان سره کاوو اونن څه صورت حال دی لهذا وس دلته کښته کیدل سنت دي.

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزدنزول محصب سنت نه ده ځکه چې حضرت عائشه رضی الله عنها اوحضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمایې چې نزول محصب سنت نه ده ځکه چې نبی کریم ﷺ په دي وجه سره دلته نزول فرمایلی وو چې دلته دمدینې منوري لورته وتل اسان دي دنسک په نیت سره نه وکښته شوی .زمونږدلیل دادی چې نبی کریم ﷺ یوه ورځ وړاندي فرمایلې وو چې مونږصبا په خیف بنوکنانه کې کښته کیدونکي یوچیرته چې قریشو په خپل کفرقسمونه خوړلې وو ،له دي څخه معلومه شوه چې نبی کریم ﷺ دلته قصدانزول کړی وو په دي وجه سره دلته کښته کیدل سنت دی.

(۷۳)اوس که یې بیرته دخپل اهل طرف ته دتللو اراده وي نوبلارمل اوسعی دي دبیت الله اوه شوطه طواف وکړي (په دي شرط چې دارمل اوسعی ده په طواف قدوم یاطواف زیارت کې کړي وي که نه نو دلته به یې کوي )ځکه چې دنبی کریم ﷺ ارشاددی چې کوم شخص چې دبیت الله حج وکړي نو دهغه اخری عهدله دي بیت سره طواف وي ،دي طواف ته طواف وداع اوطواف اخرعهدبالبیت هم ویل کیږي دادرخصتی طواف دی.

(۷۴)داطواف صرف په افاقیانو واجب دی په مکه مکرمه اوپه میقاتونو کې په اوسیدونکو باندي نشته ځکه چې داخلک نه له بیت الله څخه ځي اونه بیت الله پریږدي لهذا پردوئ دارخصتی طواف واجب نه دی بلکه ددوئ دپاره داطواف مستحب دی کمافی شرح التنویر:(وهوواجب الاعلی اهل مکة )ومن فی حکمهم فلایجب بل یندب الخ(الدرالمختارعلی الشامیة:۲/۲۰۲)

(۷۵)بيا له طواف څخه چې فارغ شې نوبيرزمزم ته دي راشي اوله ځاه څخه دي په خپله اوبه راوکاږي اوودي څښي اوپاتې اوبه دي په خپل سرتوی کړي ،دماء زمزم فضليت په متعددورواياتوسره ثابت دی حضرت ابن عباس ﷺ فرمايي چې دزمزم اوبه دځمکې دمخ له ټولواوبوڅخه افضل دي اوحضرت جابربن عبدالله ﷺ فرمايي ﴿ سمعت رسول الله ﷺ ماءُ زمزمَ لِمَا شُرِبَ له ﴾ (دزمزم اوبه چې دکوم مقصددپاره وڅښل شي دهغه دپاره کفايت کوي ).

## دزمزم اوبودڅښلوآداب

ف:دعلماؤله يوجماعت څخه مروی ده چې هغوئ دخپلوخپلومقاصدودحصول په نيت سره دزمزم اوبه وڅښلې اوهغه مقاصديې حاصل کړل ،حضرت ابن عباس ﷺ دزمزم داوبودڅښلوپروخت دادعاء ويله اللهم انی اسئلک علما نافعا ورزقا واسعا وشفاء من کل داء.

ف:دزمزم دڅښلوله ادابوڅخه داده چې دکعبې طرف ته په مخ کرځولوسره په بنی لاس سره په دريوساه کانوسره وڅښل شي اودهرځل په پيل کې دبسم الله ووايي اوپه ساه اخيستلودي الحمدلله ووايي اوموږدي بنه ډيري وڅښي كماقال ابن عباس ﷺ :اذاشربت منهافاستقبل القبلة واذكر اسم الله وتنفس ثلاثا وتضلع منها فاذا فرغت منها فاحمدالله فان رسوال الله ﷺ قال: آية بيننا وبين المنافقين انهم لا يتضلعون من زمزم، (كذا في ردالمحتار: ۲/۲۰۳)

ف:ترکومه چې په ولاړه سره دزمزم دڅښلوخبره ده نودولاړي په حالت کې داوبودڅښلوله ممانعت سره دمتعلقه رواياتوتقاضاخوداده چې زمزم هم په ولاړه سره څښل ممنوع يامکروه دي مگردزمزم اوبه په ولاړه سره څښل مختلف فيه دي راجح داده چې په ولاړه سره دزمزم اوبه څښل بلاکراهته جائزدي مگرمستحب نه ده كمافي الشامية: والحاصل ان انتفاء الكراهة في الشرب قائما في هذين الموضعين محل كلام فضلا عن استحباب القيام فيهما ولعل الاوجه عدم الكراهة ان لم نقل بالاستحباب (ردالمحتار: ۱/۹۶).ليکن دعلامه شامي درأی برعکس حضرت شيخ الحديث مولانامحمدزکرياصاحب رحمه الله په خصائل نبوی شرح شمائل ترمذی کې فرمايي چې دعلماؤمشهورقول دادی چې زمزم په دي نهی (په ولاړه سره داوبوڅښلو ممانعت )کې داخل نه دي په ولاړه سره ددي څښل افضل دي .

له دي څخه وروسته دي له ملتزم سره ونښلي يعنی خپل مخ اوسينه دي دژړاپه حال کې پرملتزم ولګوي ، ملتزم دخانه کعبې اوحجراسودپه منځ کې ديوځای نوم دی .اودخانه کعبې له پردوسره دی ونښلي اودخانه کعبې له ديوالونوسره دي ونښلي ودي ژاړي اوپه خشوع اوعاجزي سره دي الله تعالی ته دعاء وکړي مثلاداسي دعاء دي وکړي اللّهمّ هذا بيتك الذي جعلته مباركا وهدى للعالمين اللّهمّ كما هديتني له فتقبّله منّي ولا تجعل هذا آخر العهد من بيتك وارزقني العود إليه حتى ترضى عني برحمتك يا أرحم الراحمين ،له دي څخه وروسته دي دبيت الله پرفراق په غم کولواوافسوس کولوسره کورته راستون شي .

## دروضه اقدس ﷺ دزيارت بيان

ف: امام ابوداؤد رحمه الله دكتاب الحج په اخركي باب في اتيان المدينة قائم فرمايلې دی داپه دي وجه سره چې په حديث شريف کې راغلي دي ﴿ من حج البيت ولم يزرني فقد جفاني ﴾ (يعنى كوم كس چې حج وكړي اومادزيارت دپاره مدينې منورې ته رانه شې نوهغه له ماسره جفاوكړه )، ﴿ وقال ﷺ من زار قبري وجبت له شفاعتي ﴾ (چاچې زمادقبرزيارت وكړنو دهغه لپاره زماشفاعت واجب شو).دنبي كريم ﷺ دقبردزيارت كولودپاره علماؤلانديني اداب ليكلي دي چې دتللوپه حال کې دي په لاره کې په کثرت سره درودشريف وايي اوكله چې دمدينې منورې فصيل په نظرراشي نوله درودشريف سره دي دادعاء هم وكړي، اللهم هذاحرم نبيك فاجعله وقاية لي من النار وامانا من العذاب وسوء الحساب ، اوبيا داده چې مدينې منورې ته له داخليدلو څخه وړاندې ي غسل وكړي اوخوشبوئي ولګوي اوخپلې ښې جامې په تن كړي اومدينې منورې ته په عاجزۍ، سكون اووقارسره داخل شي اوكه موقع وه نوله منبرسره دي دوه ركعته دشكرانې نفل اداء كړي بيادي دنبي كريم ﷺ دسرمبارك طرف ته ده مخامخ په قبله له قبرمبارك څخه ددريويا څلورو لاسونوپه فاصله كې ودرېږي اودنبي كريم ﷺ دشكل مبارك تصوردي وكړي اوګوياپه خپل مرقدشريف کې بيده دی اووده خبري اوري بيادي په دي ډول سره درودشريف ووايي ، السلام عليك يانبي الله ورحمة الله وبركاته ، اشهدانك رسول الله فقدبلغت الرسالة واديت الامانة ، اوازدي نه ديرلوړوي اونه دي ديركښته وي بياچې چاد سلام رسولوورته ويلي وي دهغه لپاره دي داسې سلام وړاندي كړي ، السلام عليك يارسول الله من فلان بن فلان يستشفع بك الى ربك فاشفع له ولجميع المؤمنين.

## فَصلٌ في المتفرقات

په دي فصل کې دڅه متفرقومسائلوذكردی كومې چې له وقوف عرفات ، احوال النساء ، احوال بدنه اوتقليدبدنه سره تعلق لري .

(٧٦)من لم يدخل مكة ووقف بعرفة سقط عنه طواف القدوم (٧٧) ومن وقف بعرفة ساعة من الزوال الى فجر النحر فقد تم حجه (٧٨) ولو جاهلا او نائما او مغمى عليه (٧٩) ولو أهل عنه رفيقه بالاغماء جاز (٨٠) والمرأة كالرجل غير انها تكشف وجهها لا رأسها (٨١) ولا تلبي جهرا ولا ترمل ولا تسعى بين الميلين ولا تحلق رأسها ولكن تقصر (٨٢) وتلبس المخيط

**ترجمه** ،كوم كس چې داخل نه شو مكې مكرمې ته اووقوف عرفات يې وكړنوساقطيږي له ده څخه طواف قدوم ، اوكوم كس چې وقوف عرفات يو ګړی وكړي له زوال شمس څخه دلسم تاريخ ترسهارپورې نوپوره شودده حج ، كه څه هم وقوف دجهل ياخوب په حالت يادبيهوشۍ په حالت كې وكړي ، اوكه چيرته احرام وتاړه دده له طرف څخه دده ملګري دده دبيهوشۍ په وجه سره نوصحيح دی ، دښځه دنارينه په شان ده ماسوا له دي چې دابه مخ لڅوي نه سر ، اوتلبيه به نه وايي په لوړ اوازسره اورمل اوسعى بين الميلين به نه كوي اوحلق به نه كوي بلكه قصربه كوي ، اوپه تن كوي به ګنډلې شوې جامه .

**تشريح**: (٧٦) يعنى كه چاله ميقات څخه احرام وتاړه اومكې مكرمې ته دتللوپرځای سيده عرفات ته ولاړ اووقوف عرفات يې وكړ (دوقوف عرفات طريقه له دي څخه وړاندي ذكرشوي ده ) نودده له ذمې څخه طواف قدوم (كوم چې سنت دی )ساقطيږي ځكه چې طواف قدوم سنت دی له كوم څخه چې طواف زيارت كفايت

كوي ،اوپردي كس باندي دم ياصدقه هيڅ شي واجب نه دی ولی چې ده سنت طواف پريښی دی اودترک سنت په وجه سره هيڅ شی نه واجبيږي .

(۷۷)يعنی چاچې دنهم تاريخ له زوال څخه ديوم النحر(يعنی لسم تاريخ )ترسهارپوري وقوف عرفات وموندکه څه هم دلږ وخت دپاره هم وي نودده حج پوره شو(مراددای چې فرض وقوف اداء شول که نه نو ترغروب شمس پوري په عرفات کې دريدل واجب دي ).اويوګړی دريدل په دي وجه سره کافی دي چې دنبی کريم ﷺ ارشاددی ﴿الحَجُّ عَرَفَةُ فَمَنْ وَقَفَ بِعَرَفَةَ سَاعَةً مِنْ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ فَقَدْ تَمَّ حَجُّهُ ﴾ (حج دعرفه نوم دی نوکه چاوقوف عرفات وکړيوګړی په شپه کې يا په ورځ کې نودده حج تام شو).بياابتداءدوخت په خپله دنبی کريم ﷺ له فعل څخه ثابته ده چې نبی کريم ﷺ له زوال څخه وروسته وقوف وکړاوانتهاء وخت دنبی کريم ﷺ له قول څخه ثابته ده فرمايي : ﴿مَنْ أَدْرَكَ عَرَفَةَ بِلَيْلٍ فَقَدْ أَدْرَكَ الْحَجَّ وَمَنْ فَاتَهُ عَرَفَةُ بِلَيْلٍ فَقَدْ فَاتَهُ الْحَجُّ ﴾ (يعنی چاکه عرفه په شپه کې وموندله نودحج وموندی اوچاکه په شپه کې هم عرفه ونه موندله نودده حج فوت شو)په دي حديث شريف کې داخروخت بيان فرمايلی دی ،اودحج له تام والی څخه مراددادی چې اوس دده حج له فساد څخه محفوظ شو ،که نه نو دحج يورکن طواف زيارت خولاپاته دی .

(۷۸)قوله ولو جاهلاً اونائماً اومغمى عليه اى ولو كان الواقف جاهلاً انها عرفات اونائماً اومغمى عليه ،يعنی که کوم کس چې عرفات نه پيژني يادخوب په حالت کې يادبيهوشي په حالت کې پرعرفات تيرشونوداهم له وقوف عرفات څخه کفايت کوي ځکه چې رکن يعنی وقوف عرفات موجودشو ،همدارازحديث شريف ،الحج عرفة الخ ،مطلق دی په دي کې داتفصيل نشته چې هغه به وقوف عرفات پيژني لهذاصرف عرفات حاضريدل ضروري دي .

(۷۹)اوپرچاچې بيهوشي طاری شوه که دده دبې هوشي په وجه سره دده له طرفه دده ملګري احرام وتاړه نوبياهم دده حج کيږي دادامام ابوحنيفه رحمه الله قول دی ،حال داچې صاحبين رحمهما الله تعالى فرمايي چې ددی کس حج ونه شوځکه چې احرام شرط دی اوده خونه په خپله احرام وتاړه اونه يې څوک په حکم کولوسره نائب جوړکړ.دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې ده له خپلو ملګروسره دملګرتياپه عقدکولوسره له هريوه څخه په هغه کارکې دمرستې غوښتنه وکړه له کوم څخه چې دی په خپله عاجزوي اوددي سفرمقصداحرام دی له کوم څخه چې دی عاجزشونوپه دي کې خوطلب استعانت په اولی درجه سره متحقق شولهذادده له طرفه دملګرودنيابت دلالة اجازه متحققه شوه په دي وجه سره دده له طرفه څخه چې دده ملګري کوم احرام تړلی دی هغه صحيح دی اودده حج کيږي ،دامام صاحب قول راجح دی لمافي الهندية :ومن اغمى عليه فأهل عنه رفقاله جاز عندابی حنيفة (هنديه: ۱/ ۲۳۵)

**ف**:دبې هوش کس له طرف څخه داحرام تړلومطلب دادی چې دخپل احرام تړلوسره دبې هوش ملګري له طرف څخه هم داحرام نيت وکړي اوتلبيه ووايي دامرادنه ده چې دده څخه جامې وباسي اوده ته ازار ورواغوندي ځکه چې داعين احرام نه دی بلکه داحرام له ځينومحظوراتوڅخه ساتنه ده کمافي الشامية :ومعنى الاهلال عنه ان ينوى عنه ويلبى فيصير المغمى عليه محرما بذالك لانتقال احرام الرفيق اليه وليس معناه ان يجرده وان يلبسه الازار لان هذا كف عن بعض محظورات الاحرام لاعين الاحرام لعامر (ردالمحتار: ۲/ ۲۰۳)

ف:که دحج په رفقاؤکې يوه هغه بل ته وويل چې که زه بې هوشه شوم نوزماله طرفه ته په احرام ترلوکې زمانائب يې نوکه اوس که داسې صورت پيښ شونوبالاتفاق دده دملګري دده له طرفه احرام ترل کفايت کوي کمافي کشف الحقائق:وبأمره جازبالاجماع(کشف:۱/۱۳۷)

## دښځې داحرام بيان

(۸۰)ښځه په ذکرشويو ټولو احکاموکې دنارينه په څيرده ځکه چې شرعي احکام دنراوښځې دواړه لپاره دي ترڅوچې دښځې دخصوصي حکم دليل موجودنه وي ،البته سردي نه لڅوي ولې چې دښځې سرپه سترکې داخل دی اودسترلڅول جائزنه دی ،هومخ دي لڅ کړي ﴿لقوله ﷺ احرام المرأة في وجهها﴾ (دښځې احرام ددي په مخ کې دی).

ف:مګردمخ له لڅولو څخه مرادادی چې په مخ دي کوم داسې ټوکرراوځړوي چې په مخ باندي ونه نښلې اوپرده حاصله شي مثلا سائبان لرونکي خولۍ دي پرسرکښيږدي اوپه هغه بالادي برقع په سرکړي نوپه دي صورت کې په مخ باندي ټوکرنه لګيږي همداشان دام المؤمنين حضرت عائشې ؓ فعل مروی دی کمافي نهرالفائق :اخرجه ابوداؤدمن حديث عائشة أنها قالت كان الرُّكبان يَمُرُّون بنا ونحن مع رسول الله صلى الله عليه وسلم محرمات فإذا حاذَونا سَدَلَتْ إحدانا جلبابَها من رأسها على وجهها فإذا جاوَزُونا كشفناه ,قالوا:ويستحب ان تجعل على رأسهاشيئاوتجافيه ,وقدجعلوالذالک اعواداكالقبة توضع على الوجه ويسدل فوقهاودلت المسألة والحديث على الهامنهية عن ابداء وجههاللاجانب بلاضرورة (النهر الفائق ۲/۹۹:)

(۸۱)ښځه دي تلبيه په لوړاوازسره نه وايې ولې چې داصح قول مطابق که څه هم دښځې اوازپه سترکې داخل نه دی مګرپه دي کې فتنه ضرورشته په دي وجه دي تلبيه په لوړاوازسره نه وايې . همداشان دي په طواف کې رمل نه کوي .اودميلين اخضرين په منځ کې دي سعی نه کوي ولې چې دا دسترعورت دپاره مخل دی .اوسردي نه خريبي بلکه قصردي وکړي ولې چې دښځوپه حق کې دسرخريل مثله(تغيرلخلق الله)دی کوم چې حرام دی اودنبی کريم ﷺ ارشاددی ، ﴿ليس على النساء الحلق انما على النساء التقصير﴾ (په ښځودسرخريل نشته بلکه دښځودپاره دقصرحکم دی).

(۸۲)همداشان ښځه ګنډل شوي جامه په تن کولی شي ولې چې په ګنډل شوي جامه ددي لپاره سترپوشي ډيره ده اوپه صرف ازاراوردا،کې دکشف عورت خطره ده.

ف:ښځه دي دنارينوپه موجودګی کې استلام حجرنه کوی ځکه چې ښځې لره دنارينه ومس کول ممنوع دي خنثی مشکل احتياطاپه مذکوره بالااموروکې دښځې په څيردی ،همداراز ښځه دحيض اونفاس په وجه سره طواف صدرپريښودلی شي اوطواف زيارت له ايام نحرڅخه مؤخرکولی شي کمافي شرح التنوير:(ولاتقرب الحجرفي الزحام )لمنعهامن مماسة الرجال (والخنثى المشكل كالمرأة فيماذكر)احتياطا(وحيضهالايمنع-) نسكا(الاالطواف )ولاشئ عليهابتاخيره الذالم تطهرالابعدايام النحرفلوطهرتفيهابقدراكثرالطواف لزمهاالدم بتاخيره لباب (وهوبعدحصول ركنه يسقط طواف الصدر)ومثله النفاس(الدر المختار:۲/۲۰۶)

## په حج او رمضان کې دحیض دبندلو ددوایانو استعمال

**سوال**: دلته په برطانیه کې دماهواری (حیض) دبندولو گولیانې پیدا کیږي ځینې ښځې په رمضان المبارک او ایام حج کې دا استعمالوي ترڅو روژه قضاء نشي او دحج ټول احکام اداء کړای شي نو په دې نیت سره ددې گولیانو استعمال جائز دی او که یا؟ بینوا توجروا.

**ځواب**: ماهواری (حیض) فطری شی دی ددې په درلو سره په صحت باندې دبد اثر دپریوتلو خطره ده په دې وجه سره دې په رمضان کې گولی نه استعمالوي وروسته دې دروزو قضا راوړي، په حج کې یې هم استعمالول په کار نه دي، له طواف زیارت څخه ماسوا ټول افعال اداء کولی شي او له حیض څخه له پاکیدلو وروسته طواف زیارت هم کولی شي البته که وخت لږ وو او د طواف زیارت وخت نه وو او له کوشش سره د حکومت له طرف څخه د نور وخت د ترلاسه کولو امکان نه وو نو د استعمال گنجائش شته مگر په صحت باندې دبد اثر د پریوتلو خطره شته او ددې مشاهده هم ده په دې وجه یې حتی الامکان باید استعمال نه کړي، مگر داچې بالکل مجبوره شي، فقط والله اعلم (فتاوی رحیمیه :۱۳۶/۸) خلاصه داچې قباحت په طبي لحاظ سره ده که نه نو د شریعت له طرف څخه څه ممانعت نشته.

(۸۳) وَمَنْ قَلَّدَ بَدَنَةَ تَطَوُّعٍ اَوْ نَذْرٍ اَوْ جَزَاءِ صَيْدٍ اَوْ نَحْوِهِ فَتَوَجَّهَ مَعَهَا يُرِيدُ الْحَجَّ فَقَدْ أَحْرَمَ (۸۴) فَإِنْ بَعَثَ بِهَا ثُمَّ تَوَجَّهَ إِلَيْهَا لَا يَصِيرُ مُحْرِمًا حَتّٰى يَلْحَقَهَا (۸۵) إِلَّا فِي بَدَنَةِ الْمُتْعَةِ (۸۶) فَإِنْ جَلَّلَهَا اَوْ أَشْعَرَهَا اَوْ قَلَّدَ شَاةً لَمْ يَكُنْ مُحْرِمًا (۸۷) وَالْبُدْنُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ

**ترجمه**: او چاچې قلاده وځړوله دقربانۍ په غاړه کې خواه که قربانۍ نفل وي یا نذری وي یا جزاء صید وغیره وي او وروان شو له هغې سره دحج په اراده نو هغه محرم شو، او که یې قربانۍ وړاندې روانه کړه بیا دی روان شو نو محرم نه شو ترڅو چې له هغې سره یو ځای شي، مگر دحج تمتع په قربانۍ کې، او که یې ځل وا چاوه په قربانۍ باندې یا یې اشعار وکړ یا یې قلاده وځړوله دپسه په غاړه کې نو محرم نه گرځي، او بدنه داوښ او غوایې معتبره ده.

**تشریح**: (۸۳) که چاد بدنې (دقربانۍ ځاروی، اوښه یا غوا کومه چې په مکه مکرمه کې قرباني کیږي) په غاړه کې قلاده وځړوله خواه که هغه بدنه نفلي وي یا دنذر وي یا دښکار مرکولو بدله وي (مثلاله دې څخه وړاندې ده په حرم کې ښکار قتل کړی وي) یا هغه کوم چې ددې په شان وي مثلا دحج تمتع یا قران بدنه وي او له دې سره دحج په اراده په خپله هم روان شو نو دده احرام وتړل شو یعنی دلبیک ویلو بغیر صرف په دې عمل (مراد تقلید، توجه او اراده حج ده) سره دی محرم شو ولې چې دادحاجې دلبیک ویلو قائم مقام گرځې په دې وجه چې دلبیک ویلو څخه مقصود دا وي چې دحج کولو پخه اراده ظاهره کړي او دا مقصود دبدنې په غاړه کې په قلاده اچولو او له ځان سره په روانولو هم حاصلیږي.

(۸۴) او که چادبدنې په غاړه کې قلاده واچوله او وړاندې یې ولیږله وروسته دی هم روان شو نو صرف په تگ کولو سره محرم نه گرځي ترڅو چې دی له خپلې بدنې سره یو ځای نشي ولې چې ترڅو چې ځاروی له ده سره نه وي نو دا صرف دحج نیت کول دي او په صرف نیت کولو سره څوک محرم نه گرځي بلکه ضروري داده چې یا خو تلبیه ووایې یا بدنه له ځان سره روانه کړي، نو که داشخص میقات ته ورسیدی

مګر تراوسه له خپلې بدنې سره نه ده يوځای شوی نوپرده لازمه ده چې له ميقات څخه په تلبيه ويلوسره احرام وتړي.

(۸۵)البته دحج تمتع دبدنې داحکم نه دی بلکه دهغې حکم دادی چې څرنګه چې حاجې له دي وروسته په نيت کولوسره روان شي نواستحساناً محرم ګرځي له بدنې سره يوځای کيدل شرط نه دي ، دقياس تقاضاخودلته هم داده چې په صرف تګ سره محرم نه شي ليکن موږداستحسان په وجه سره قياس ترک کړی دی داستحسان وجه داده چې هدی تمتع شريعت ابتداء له مناسک اوافعال حج څخه يو فعل مقرراومشروع کړی دی ځکه چې داهدی په مکه مکرمه پسې مختصه ده اوددوعبادتونوپه يو ځای داداء کولوپه وجه بطورشکرواجب شوي ده حال داچې له هدی تطوع علاوه دجنايت وغيره په وجه سره چې کومه هدی واجب وه هغه دمکې له خصوصياتو څخه نه ده نودهمدي فرق په وجه سره دتمتع په هدی کې صرف روانيدل کافي دي له هدی سره ديوځای کيدلو يايوځای روانيدلوشرط پاتي شوی دی .

ف:مګرپه تمتع کې هم داشرط ده چې بدنې ته قلاده وراچول اووروسته ددي په شاپسې په روانيدلو کې صرف په هغه صورت کې محرم شمارل کيږي چې تقليداوتوجه په اشهرحج کې وي که نه نو په غيراشهرحج کې صرف په تقليداوتوجه سره محرم نه ګرځي ترڅوچې له هدی سره يوځای روان نه شي ولی چې له اشهرحج څخه وړاندي دتمتع اعتبارنشته اوکله چې دتمتع اعتبارنشته نوداکس متمتع نه شمارل کيږي لهذاده ته دارعايت هم نشي وركول کيدلی .

(۸۶)که چاپربدنه باندي ځل واچاوه ياپې اشعاروکړ(يعنی دهدی داوښ دکوهان په کيڼ طرف کې زخم لګول ترڅوچې دامعلومه شي چې دادهدی اوښ دی )ياپې دپسه په غاړه کې قلاده وتړله نوپه دي سره محرم نه ګرځي ولی چې داامورد حج له خصائصو څخه نه دي په دي وجه چې جهول دګرمي اويخنې ددفع کولوداپاره وي او اشعار امام ابوحنيفه رحمه الله دخپلې زمانې اشعارمکروه ګڼې لهذاداله مناسکو څخه نه دي دصاحبينوپه نزدکه څه هم حسن ده مګرداکله کله دعلاج اومعالجې لپاره هم کيږي ، اودپسه په غاړه کې قلاده تړل غيرمعتاددي اوسنت هم نه ده لهذاله خصائص حج څخه دنه کيدلوپه اساس په دي سره محرم نه ګرځي .

(۸۷)اوبدنه په شريعت کې داوښ اوغوامعتبره ده .دامام شافعي رحمه الله په نزدبدنه صرف اوښ ته وايي غوابدنه نه ده دده دليل دحضرت جابر رضي الله عنه حديث دی چې ﴿نحرنا البدنة عن سبعة والبقرة عن سبعة﴾ (موږذبح کړاوښ داووکسانوله طرف څخه اوغواداووکسانوله طرف څخه)ګوره په دي روايت کې البقره په البدنه باندي عطف ده اوعطف دمغائرت تقاضاکوي لهذاغوابدنه نه ده ،زموږدليل دادی چې بدنه شرعاًولغةً اوښ اوغوادواړوته ويل کيږي جوهری فرمايي: البدنة ناقة اوبقرة اوابن الاثيرپه نهايه کې ليکي البدنة تقع على الجمل والناقة والبقرة اوعلامه نووي فرمايي :وهوقول اكثراهل اللغة ولان البدنة ماخوذم من البدانة وهى الضخامة وقداشتركافيها اودحضرت جابر رضي الله عنه په حديث کې تصريح موجوده ده چې بدنه غواته هم شامله ده چنانچه فرمايي كانحرالبدنة عن سبعة فقيل له والبقرة فقال وهل هي الامن البدنة (موږداووکسانوله طرف څخه بدنه ذبح کوله نوده وويل شول چې دغواڅه حکم دی ده وفرمايل :چې غواخوهم بدنه ده ).

## باب القران

### داباب دقران په بيان کې دی

قران له قرن څخه دضرب اونصرله باب څخه راځي په لغت کې مطلقاجمع بين الشيئين ته ويل کيږي اوشرعاً په يوه سفرکې دحج اوعمري احرام اوافعال جمع کولوته قران ويل کيږي.

څرنګه چې حج افراد په منزله دمفرد دی ولی چې په افراد کې صرف دحج احرام وي اوقران په منزله دمرکب دی ولی چې په ده کې دعمري اوحج دوادړواحرام وي په دي وجه سره يې دحج افرادبيان ترحج قران مقدم کړ.

(٨٨)هو أفضَلُ ثُمَّ التَّمَتُّعُ ثُمَّ الإفرادُ(٨٩)وهو أن يُهِلَّ بالعُمرةِ والحَجِّ من الميقاتِ ويَقولَ اللَّهُمَّ إني أُريدُ العُمرةَ والحَجَّ فَيَسِّرهُما لي وتَقَبَّلْهُما مِنِّي (٩٠)وَيَطوفَ وَيَسعَى لها(٩١)ثُمَّ يَحُجَّ كما مَرَّ

**ترجمه**:حج قران افضل دی بیاتمتع بيا افراد ،اوحج قران دادی چې احرام وتړي له ميقات څخه دحج اوعمري دواړو اووايي يا الله زه اراده کوم دحج اوعمري ته دا اسان کړي زما لپاره او قبول يې کړي له ما څخه ،اوطواف اوسعی دي وکړي دعمري دپاره ،بيا دي حج وکړي په تيره شوي طريقه سره.

**تشريح**:(٨٨)حج پر دري قسمه دی ،قران ،تمتع ،او افراد.په يوه احرام سره دحج اوعمري اداء کولوته قران ويل کيږي اوپه يوه سفر او دوو احرامونو سره دحج اوعمري اداء کولوته تمتع ويل کيږي اوپه يوه سفرکې صرف حج کولوته افراد ويل کيږي.

داحنافو په نزد حج قران افضل دی دحج تر باقي دواقسامو يعنی حج افراد او حج تمتع څخه ولی چې دنبی کريم ﷺ ارشاد دی ﴿ يا آل محمد اهلوابحجة وعمرة معا﴾ (يعنی ای ال محمد دحج اوعمري دواړو يوځای احرام وتړئ )،همدارنګه قران کې په يوه احرام سره دوه عبادتونه اداء کيږي نو دادصوم مع الاعتکاف سره مشابه ده ،او احرام هم ترډيرو ورځو پوري وي په کوم کې چې مشقت زيات دی په دي وجه سره قران افضل دی ،داحنافو دصحيح قول مطابق حج تمتع افضل دی ترحج افراد ولی چې دجمع بين العبادتين په وجه دقران سره مشابه ده که څه هم يو روايت له امام ابو حنيفه رحمه الله څخه داهم مروی دی چې افراد افضل دی.

دامام مالک رحمه الله په نزد حج تمتع افضل دی دده دليل دادی چې الله تعالی په قران کريم کې په خپل دي ارشاد ﴿ فَمَن تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ ﴾ کې دحج تمتع ذکر کړی دی لهذا دادافضليت دليل دی.

دامام شافعی رحمه الله په نزد حج افراد افضل دی دده دليل دادی چې نبی کريم ﷺ فرمايلي دي ، القران رخصة،(يعنی قران رخصت دی )له دي څخه ښکاره داده چې دقران کولو اجازه شته عزيمت افراد دی نو څرنګه چې له اجازت څخه عزيمت اولی دی لهذا حج افراد اولی دی .امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې داپه اصل کې نبی کريم ﷺ داهل جاهليت ديوي عقيدي نفی کړي ده داهل جاهليت عقيده داوه چې العمرة فی اشهر الحج الجر الفجور ،نو ددي عقيدي دنفی دپاره نبی کريم ﷺ وفرمايل چې اوس دقران رخصت شته ،داهل جاهليت عقيده باطله ده چې په اشهر حج کې عمره ګناه ده.

(٨٩)له دي ځايه مصنف رحمه الله دحج قران طريقه درشودل غواړي چې دحج قران طريقه داده چې له ميقات څخه په يوه ځاى دحج اوعمري احرام وتړل شي ،داحرام ددوو ركعتونو لمانځه څخه وروسته به داسې دعاء وكړي اللهم انى اريد الحج والعمرة فيسرهما لى وتقبلهما منى ،په ځينونسخوكې عمره مخته ذكرشوي ده نوځوذكردفعل سره مطابق وي ولى چې دعمري افعال دحج له افعالوڅخه مقدم دي البته زموږپه دې نسخه كې دحج ذكرمقدم دى نوداد باري تعالى په قول ﴿واتموا الحج والعمرة لله﴾ سره دتبرک حاصلولو دپاره دى .

(٩٠)اوس چې كله مكې مكرمې ته داخل شي نولومړى دي دعمري افعال اداء كړي په دې ډول سره چې دبيت الله اووه شوطه طواف دي وكړي په اولنيو دريوشوطونوكې دي رمل وكړي اوپه باقى څلوروكې دي په خپل هئيت پروقاراوسكون سره ځي ،بيادسعى بين الصفاوالمروه وكړي دكوم چې طريقه وړاندې بيان شوې ده .په سعى كولوسره دعمري افعال مكمل كيږي ليكن له سعى وروسته دي حلق ياقصرنه كوي له دې وجهې چې احرام حج او افعال حج ترا اوسه باقى دي حلق او قصرله احرام حج سره منافى دي .

(٩١)له عمري څخه له فراغت وروسته دي اوس حج وكړي په هغه طريقه سره دكومې تفصيل چې دحج افرادپه بيان كې تيرشويعنى دحج لپاره دي قدوم وكړي بيادې په اتم دذوالحجې منى بياعرفات بيامزدلفه ،په لسم دذوالحجې دي منى ته په رسيدلو جمره عقبه وويلې اودم شكردي ذبح كړي كوم ته چې دم قران ويل كيږي بيادې طواف زيارت وكړي كمامرالتفصيل.

ف:داحنافوپه نزدپه قران كې دعمري افعال جلاكول ضروري دي اودحج لپاره طواف اوسعى جلادي ، حال داچې دامام شافعى او امام مالک په نزددحج اوعمري لپاره يوطواف اويوه سعى ده ﴿لقوله ﷺ دخلت العمرة فى الحج الى يوم القيامة﴾ (يعنى عمره په حج كې داخله شوه ترقيامت پوري )لهذادحج لپاره شوى طواف اوسعى دعمري دپاره هم كافى دي، زموږدليل دادى چې صفى بن معبددوه طوافه اودوه سعى وكړي نوحضرت عمر رضي الله عنه دده ته وفرمايل ﴿هديت لسنة نبيک صلى الله عليه وسلم﴾ (تادخپل نبى دسنت لاروموندله )، همدارازدقران معنى داده چې يوعبادت له بل عبادت سره ضم كړاى شي اودابه هله وي چې دهرعبادت افعال جلااداء كړي كه نه نوداخوضم نه دى بلكه تداخل دى ،تركومه چې دامام شافعى رحمه الله دليل دى نوددې مطلب دادى چې دعمري وخت دحج په وخت كې داخل شوله كوم څخه چې داهل جاهليت دمذكوره بالاعقيدې نفى مقصوددى كمامر.

(٩٢)فإن طاف لهما طوافين وسعى سعيين جاز وأساء (٩٣) وإذا رمى يوم النحر ذبح شاة أو بدنة أو سبعها (٩٤) وصام العاجز عنه ثلاثة أيام آخرها يوم عرفة وسبعة إذا فرغ ولو بمكة (٩٥) فإن لم يصم إلى يوم النحر تعين الدم (٩٦) فإن لم يدخل مكة ووقف بعرفة فعليه دم لرفض العمرة وقضاؤها

ترجمه:اوكه يې طواف وكړددواړه لپاره دوه طوافه اودوه سعى يې وكړي نوجائزده مكربده ده ،اوكله چې رمى وكړي دقربانۍ په ورځ نوذبح دي كړي پسه يااوښ ياددهٔ اومه حصه ،اوروژه دې ونيسې له دې څخه عاجزدې ورځې چې اخري ورځ به يې دعرفې ورځ وي اواوه ورځې كله چې فارغ شي كه څه هم په مكه كې وي ،اوكه يې روژه ونه نيوله دقربانۍ ترورځې پوري نومتعينه شوه قربانۍ ،اوكه داخل نه شومكې ته اووقوف عرفات يې وكړنوپرده دم دي دعمري دپريښودلوپه وجه سره اودعمري قضاء ده .

**تشريح:** (۹۲)که قارن اول دحج اوعمري لپاره مسلسل دوه طوافه وکړل اوبیایې ددواړولپاره دوه سعي وکړي نودا جائزده ولی چې ده هغه عمل وکړکوم چې پرده واجب دی مګرداسې کول بدکاردی ولی چې ده دعمري په سعی کې تاخیروکړاودحج طواف یې مخته وکړ،لیکن ددي په وجه سره پرده هیڅ هم نه لازمیږي.

(۹۳)په لسم دذوالحجې منی ته په رسیدلودي جمره عقبه وویلي اودم شکر(چې الله تعالی په یوه سفرکې ددوو عبادتونو دادا،کولوتوفیق ورکړ)دی ذبح کړي کوم ته چې دم قران ویل کیږي،دادم واجب دی ولی چې قران دتمتع په معنی دی اوذبح کول په تمتع کې منصوص علیه دي،ددم قران په ذبح کولوسره حاجي له دواړو احرامونو څخه ووځي،دحج باقی اعمال یعنی طواف زیارت،رمی جمرات اوطواف صدردي اداء کړی اوکورته دي ولاړشي،دابایدیادوساتل شي چې په دم کې که یې خوښه وي نوپسه دي ذبح کړي یااوښ یاغوایادي له دي دوو څخه دیوه اومه حصه واخلي.

**ف:** دامام مالک رحمه الله په نزدبدنه صرف له یوه نفرڅخه کفایت کوي داوونفرولپه طرفه کافي نه ده. داحنافودلیل دحضرت جابر رضي الله عنه حدیث دی فرمایي:چې موږله نبی کریم ﷺ سره حج اداء کړنوموږ اوښ اوغويی داوونفرولپه طرف څخه ذبح کړ.

**ف:** داوښ ذبح کول له غوایې څخه افضل دی اوغويی له پسه څخه افضل دی اوپه غويی کې اشتراک له پسه څخه افضل دی په دي شرط چې دده دحصې قیمت دپسه له قیمت څخه زیات وي. کمافی الشامیة:والجزور افضل من البقروالبقر افضل من الشاة كذافی الخانیة وغیره لهرزادفی البحروالاشتراک فی البقرافضل من الشاة اه وقیده فی الشرنبلالیة تعاللوهبانیة بمااذاكانت حصته من البقراكثرمن قیمة الشاة(ردالمحتار:۲/۲۰۹)

(۹۴)اوکه چیرته قارن له دم قران څخه عاجزوي یعنی له ده سره نه دم وي اونه دهغه قیمت نوپه ایام حج کې دي دري روژې ونیسې لقوله تعالی ﴿فمن لم يجد فصيام ثلاثة أيام في الحج﴾(یعنی څوک چې هدی ونه مومندي نوپرده دري روژي دحج په ایاموکې واجب دي)داایت مبارک که څه هم دتمتع په باره کې نازل شوی دی مګرځرنګه چې قران هم دتمتع په څیردی چې په یوه سفرکې ددووعبادتونو فائده حاصلوي لهذا دقران هم هغه حکم دی کوم چې دتمتع دی.اوروژي دي په دي ډول سره ونیسي چې دریمه روژه دعرفات په ورځ وي یعنی له اوم ذوالحجه څخه شروع کول مستحب دي ولی چې روژه نیول ددم بدل دی لهذا په دي امید سره مؤخرکول مستحب دي چې په اخروخت کې ممکنه ده چې پرقربانۍ دي قدرت حاصل شي.نوداتاخیرافضل دی که نه نو دعرفات له ورځې څخه وړاندي اوپه متفرق ډول سره یې هم نیولی شي،اواوه روژي دله ایام تشریق څخه وروسته ونیسي لقوله تعالی ﴿وسبعة إذا رجعتم﴾ (یعنی اوه روژي کله چې تاسې واپس شئ).اودااوه روژي که یې خوښه وي په مکه کې دي ونیسي اوکه خوښه وي نوکورته له راتلووروسته دي ونیسي.

**ف:** دامام شافعی رحمه الله په نزدپه مکه مکرمه کې داروژي نیول جائزنه دي الاداچې حاجي دوري دمقیم کیدونصدوکړي دی په سبعة اذرجعتم کې په لفظ درجعتم سره استدلال کوي چې ددي اوروژوپه باره کې حکم دادی چې کورته له تلووروسته دي ونیسي.موږوایوچې سبعة اذارجعتم په معنی د سبعة اذا فرغتم من افعال الحج دی فراغ درجوع سبب دی نوداله قبیلې د اطلاق المسبب علی السبب دی.

(۹۵)ليکن که چاپه مذکوره بالاصورت کې له لسم دذوالحجې وړاندي دري روژي ونه نيولې نواوس دم قران متعين شوي اوس له قرباني څخه ماسوابله هيڅ چاره نشته ولی چې اصل خوقرباني ده دمجبوري په وجه سره داحکم دقرباني ددی بدل روژوته منتقل شوی دی اوبدل موصوف دی په ثلاثة ايام فی الحج سره اوس څرنګه چې داصفت پاته نشونوحکم داصل طرف ته واپس شو.

ف:ليکن که دی بیاهم له دم څخه عاجزوو نودی دي احرام خلاص کړي اوحلال دي شي اوس پرده دوه دم واجب دي يودم قران اودوهم دم په دي وجه واجب دی چې دی دهدي دڅاروي له ذبح کولوڅخه وړاندي حلال شوکمافی شرح التنوير:فلولم يقدرتحلل وعليه دمان ،قال ابن عابدين :(قوله وعليه دمان )ای دم التمتع ودم التحلل قبل اوانه (ردالمحتار:۲/۲۱۰)

(۹۶)که چاله میقات څخه دعمري اوحج احرام وتاړه مګربيايې دقران عمره پرينبودله اوسيده عرفات ته ولاړی نوده عمره پرينبوده لهذااوس دده حج حج افرادشوقران نه دی ولی چې اوس په دي دول سره عمره کول متعذردی چې په هغې دحج احکام بناء شي ،نودعمري دپرينبودلوپه وجه سره دجبيري په طورپرده دم لازم دي ولی چې عمره دشروع کولوپه وجه سره واجب شوه څکه به نودترک واجب قضاء کوي،البته دده پرذمه دم قران نشته ولی چې په يوه سفرکې ددووعبادتونوداداء کولوتوفيق حاصل نه شو.

## بَابُ التَّمَتُّعِ

### داباب دتمتع په بيان کې دی

تمتع په لغت کې دانتفاع په معنی ده اوشرعاًعبارت ده عن الجمع بين احرام العمرة وافعالها واحرام الحج وافعاله فی اشهرالحج من غيرالمام صحيح باهله (يعنی له المام صحيح څخه بغيردحج اوعمري احرام اوافعال په اشهرحج کې جمع کولوته حج تمتع ويل کيږي).

ف:المام الصحيح دشيخينوپه نزدداده چې عمره اداء کړي په حرم کې سروخريې خپل ځان حلال کړي اوکورته راشي (داپه هغه متمتع کې ده کوم چې له ځان سره هدی نه وي بيولې اوکه ده له ځان سره هدی بيولې وه نوکه هغه که څه هم وطن ته راشي بيابه هم دده المام صحيح نه وی )اودامام محمد رحمه الله په نزدخپل ځان حلالول دالمام صحيح دپاره ضروري نه ده.

ف:دشيخينوقول راجح دی کمافی الدرالمختار:لم يعدعمرته عادالی بلده وحلق فقدالم الماماصحيحا فبطل تمتعه ومع سوقه تمتع کالقارن ،قال ابن عابدين :(قوله مع سوقه تمتع )ای لايبطل تمتعه بعوده عندهماخلافالمحمد رحمه الله (الدرالمختارمع الشامية:۲/۲۱۵)

دتمتع له قران سره مناسبت دادی چې په دواړوکې ددووعبادتونوجمع والی شته البته قران يې دقران دافضليت په وجه سره مخته ذکرکړاودتمتع بيان يې مؤخرکړ.

(۹۷)هو أن يحرم بعمرة من الميقات فيطوف لها ويسعى ويحلق او يقصر وقد حلّ منها ويقطع التلبية باول الطواف (۹۸)ثم يحرم بالحج يوم التروية من الحرم ويحج ويذبح فإن عجز فقد مرّ (۹۹)فإن صام ثلاثة أيام من شوال واعتمر لم يجزه عن الثلاثة وصحّ لو بعد ما أحرم بها قبل أن يطوف (۱۰۰)فإن أراد سوق الهدي أحرم وساق (۱۰۱)وقلّده بمزادة او نعل ولا يشعر (۱۰۲)ولا يتحلل بعد عمرته ويحرم بالحج يوم التروية (۱۰۳)وقبله أحبّ فإذا حلق يوم النحر حلّ من إحراميه

**ترجمه**: حج تمتع داده چې احرام وتړي دعمري له ميقات څخه او طواف وكړي دعمري لپاره او سعى وكړي او حلق وكړي يا قصر وكړي او حلال شوپه دي سره او قطع دي كړي تلبيه په شروع دطواف كې، بيا دي احرام وتړي دحج به اتم تاريخ له حرم څخه حج دي وكړي او ذبح دي وكړي بيا كه عاجزوي نو دده حكم تيرشو، او كه دري روژي ونيسي په شوال كې بيا عمره وكړي نو دا كفايت نه كوي دتمتع له دريو روژو څخه او صحيح ده كه دعمري له احرام څخه وروسته وي له طواف كولو څخه وړاندې، نو كه يې اراده وكړه دقرباني دبولونو احرام دي وتړي او قرباني دي بوځي، او قلاده دي ورپه غاړه كې بدني ته دڅرمي يا چپلې او اشعار دي نه كوي، او نه دي حلاليږي له عمري څخه وروسته او احرام دي وتړي دحج په اتم تاريخ، او له دي څخه وړاندې ښه ده بيا چې كله سرو خريي په لسم تاريخ نو له خپلو دواړو احرامونو څخه حلال شو.

**تشريح**: (۹۷) مصنف رحمه الله دتمتع اصطلاحي تعريف بيان كړى دى چې تمتع دي ته وايي چې له ميقات څخه دعمري احرام وتړي او دعمري دپاره دي طواف او سعى وكړي بيا دي حلق يا قصر وكړي او دعمري له احرام څخه دي حلال شي او تلبيه دي دطواف په شروع كې قطع كړي له دي څخه وروسته دي په اتم ذوالحجه له حرم شريف څخه دحج احرام وتړي او حج دي وكړي او قرباني دي ذبح كړي او كه يې دقرباني څاروى ونه موند نو بيا دي روژي ونيسي دكوموچې تفصيل مخكې تيرشو.

ف: متمتع پر دوه قسمه دى-/نمبر۱. كوم چې بغير له هدى حج ته ځي. /نمبر۲. كوم چې له ځان سره هدى بيايي. مصنف رحمه الله چې دتمتع كوم اصطلاحي تعريف بيان كړي دى دا د قسم اول تعريف دى. په دي دواړو كې دهريوه احكام جلا جلا دي كوم چې په راتلونكې بيانيږي.

ف: دمتمتع داولني قسم (يعنى كوم چې له ځان سره هدى نه بيايي) طريقه داده چې كوم متمتع له ځان سره هدى نه بيايي نو هغه دي له ميقات څخه صرف دعمري احرام وتړي او مكې مكرمې ته دي ولاړشي او شوطه طواف دي وكړي په اولنيو دريو شوطونو كې دې رمل هم وكړي بيا دسعى بين الصفا والمروه وكړي له دي څخه وروسته دي حلق يا قصر وكړي نو دعمري له افعالو څخه حلال شو همدا شان نبى كريم ﷺ په عمره قضاء كې كړي وو. او څرنګه چې دعمري طواف شروع كړي يعني دحجر اسود استلام وكړي نو تلبيه دي قطع كړي ولې چې نبى كريم ﷺ په عمره قضاء كې تلبيه هغه وخت قطع كړه كوم وخت چې يې دحجر اسود استلام وكړ.

ف: له امام مالك رحمه الله څخه يو روايت دادى چې څرنګه يې په مكه مكرمه باندي نظر ولګيږي نو تلبيه دي قطع كړي او دوهم روايت دادى چې كله دمكې بيوت وويني نو تلبيه دي قطع كړي، زمونږ دليل دحضرت ابن عباس رضي الله عنه روايت دى ﴿ أنّه صلى الله عليه وسلم كان يمسك عن التلبية في العمرة إذا استلم الحجر ﴾ (چې نبى كريم ﷺ به عمره كې تلبيې څخه هغه وخت لاس اخيستو كوم وخت چې به يې استلام حجر كاوو).

(۹۸) دعمري دافعالو له اداء كولو څخه وروسته كه دحج تر ايامو وخت وي نو په مكه مكرمه كې دي حلال اوسي بيا دي په اتم دذى الحجې يا له دي څخه وړاندې يا له دي څخه وروسته دعرفات ترورځې پوري دحج احرام وتړي مګر له اتم تاريخ څخه وړاندي احرام تړل افضل دي لان فيه الرغبة في العبادة، دحج داحرام په تړلو سره دي دحج افعال اداء كړي دكوم تفصيل چې دحج افراد په بيان كې تيرشو. البته داكس به په طواف

زیارت کې رمل کوي اوله دې څخه وروسته به سعي بین الصفا والمروه کوي په خلاف د مفرد څرنګه چې هغه رمل اوسعی په طواف قدوم کې کړي دي په دې وجه په طواف زیارت کې دده لپاره د رمل او سعی حکم نشته .هدا رازدې دم ذبح کړي ولې چې دمتمتع پرذمه دم تمتع لازم دي که دم ونه موندنو ددې حکم په باب القران کې تیرشوچې دري ورځې دې په ایام حج کې روژه ونیسي اواوه روژې دې له افعال حج څخه له فارغیدلو وروسته ونیسي.

(۹۹)که حاجې په شوال کې یادحج دمیاشتو په کومه میاشت کې دري روژې ونیولې بیایې عمره وکړه نودادري روژې دتمتع دهغودریوروژوڅخه کفایت نه کوي دکوم حکم چې په ﴿ فمن لم يجد فصيام ثلاثة ايام في الحج ﴾ کې شوی دی ولې په کوم وخت کې چې روژې نیسي په دې وخت کې سبب یعنی دعمري احرام موجودنه دی حال داچې داروژې دتمتع ددم په بدله کې نیول کیږي نوکله چې ده دعمري احرام نه ده تړلی نودی متمتع نه دی .اوکه دعمري له احرام څخه بعدله طواف څخه وړاندې دري روژې ونیسي نوداصحیح دي ولې چې سبب موجوددی.

ف:ددریوروژوپه شوال کې دنیولوقیداحترازي نه دی بلکه اتفاقي دی ولې چې دعمري له احرام څخه وړاندې په اشهرحج کې ددریوروژونیولوهم همداحکم دی ،مقصوددادی چې دعمري له احرام څخه وړاندې روژې معتبرې نه دي خواه که هروخت وي کمافي الدر المختار:وجاز صوم الثلاثة بعد احرامها اى العمرة لكن في اشهر الحج ،قال ابن عابدين :(قوله لكن في اشهر الحج )مرتبط بالصوم والاحرام فلواحرم قبلها وصام فيها لم يصح لانه لايلزم من صحة الاحرام بالعمرة قبل الاشهر صحة الصوم(الدرالمختارمع الشامية:۲/۲۱۳)

(۱۰۰)له دې ځایه مصنف ﷫ دمتمتع ددوهم قسم (کوم چې له ځان سره هدی بیولي وي ) احکام بیانوي داقسم له اولنی قسم څخه افضل دی ولې چې نبی کریم ﷺ هدایاله ځان سره بیولي وي ، ددې طریقه داده چې رومبی له میقات څخه احرام وتړي بیاهدی وشړي ولاړشي مکې مکرمې ته په داخلیدلوسره دعمري افعال اداء کړي ،اودعمري په افعالوسره نه حلالیږي حتی چې داتم په ورځ دحج احرام وتړي اودحج افعال اداء کړي بیاځان حلال کړي ولې چې دحجة الوداع په موقع نبی کریم ﷺ هدی له ځان سره بیولې وه وروسته یې وفرمایل چې که ماته له وړاندې څخه داخبره معلومه وای چې هدی بول له حلالیدلوڅخه مانع دی نومابه هدی له ځان سره نه وه بیولې لیکن څرنګه چې ماهدی له ځان سره راوستې ده په دې وجه زه نه حلالیږم ،نوله دې څخه معلومه شوه چې هدی بیونکې متمتع دعمري له افعالوڅخه وروسته نه حلالیږي.

(۱۰۱)دتمتع په دې قسم کې چې حاجې کومه بدنه یعنی اوښ یاغویی له ځان سره بیایې نوزړه چیره یاچپیل دې په غاړه وروځړوی دادحضرت امام ابوحنیفه ﷫ مسلک دی ﴿ لحديث عائشة ﵂ قالت كنت افتل قلائد هدي رسول الله ﷺ ﴾(یعنی حضرت عائشه ﵂ فرمایي چې مادنبی کریم ﷺ دهدی هاراوبدلی وو).او اشعاردې نه کوي ولې چې اشعار مکروه دی په دې وجه چې اشعارکول دځاروی مثله کول دي اومثله کول دحربي کافرلاهم ناجائزه ده نوچاته چې عقوبت ورکول جائزنه ده دهغه مثله کول به څرنګه جائزشي ؟

ف :اشعارپه لغت كې زخمي كولوته ترڅووينه راوبهيږي ويل كيږي او اصطلاحي معنى يې داده چې داوښ دكوهان ښي طرف زخمي كړي ترڅوچې وينه راووځي بيادا وينه دده په كوهان باندي ولګول شي ، مګرديره ښه داده چې كيڼ طرف يې زخمي كړي ولى چې نبى كريم ﷺ كيڼ طرف قصدا او ښي طرف اتفاقا زخمي كړى وو اوظاهره ده چې كوم كارمقصوداوي هغه قابل اتباع ده كمافى نهرالفائق :وهولغة الجرح حتى يسيل منه الدم كماهوظاهر كلام الجوهرى وغيره وعرفا ضربها بالحربة فى حدسنامها حتى يخرج منه الدم ليلطخ له سنامها قيل فى الجانب الايمن واختاره القدورى والاشبه بالصواب كونه فى جانب الايسر (النهر الفائق: ۲/۱۰۸)

ف :صاحبين رحمهماالله تعالى وايي چې دبدني اشعاردي وكړي ولى چې داله نبى كريم ﷺ اوخلفاء راشدينو ﷺ څخه مروى ده امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي چې اشعاردي نه كوي .دخلاف روايت كيدلوپه وجه سره دامام ابوحنيفه رحمه الله دقول داتاويل كړل شوى دى چې هغه دخپلې زماني دخلګولپاره اشعارمكروه ګرځولى وو ولى چې په دي زمانه كې خلګوپه اشعاركې له حد څخه تجاوزكاوو له كوم څخه چې دزخم دسرايت كولو خطره وه كمافى الشامية:(قوله لان كل احدلايحسنه) جرى على ماقال الطحاوى والشيخ ابو منصورالماتريدى من ان اباحنيفه لم يكره اصل الاشعاروكيف يكرهه مع مااشتهرفيه من الاخبار وانماكره اشعاراهل زمانه الذى يخاف منه الهلاك خصوصا فى حرالحجازفرأى الصواب حينئذسدهذاالباب على العامة فامامن وقف على الحدبان قطع الجلددون اللحم فلاباس بذالك قال الكرمانى وهذاهوالاصح وهواختيارقوام الدين وابن الهمام فهومستحب لمن احسنه شرح اللباب (ردالمحتار: ۲/۲۱۳)

ف :دابايديادوساتل شي چې قلاده ياشعارددي لپاره كيږي ترڅوخلګوته معلومه شي چې داهدى ده اوداوبوپه ګودراوپه څرځايونوكې دي ته تعرض ونه كړي .

(۱۰۲)بياچې كله متمتع مكې مكرمې ته داخل شي نوطواف اوسعى دي وكړي اوحلاليږي نه ترڅوچې په اتم تاريخ دحج احرام وتړي ،ځكه چې متمتع له ځان سره څاروى بوتى دى كوم چې له حلال والى څخه مانع دى په دي وجه له افعال عمره څخه بعدبه حلق نه كوي اونه به ګنډل شوي جامه په تن كوي اونه به خوشبولګوي بلكه په احرام كې به اوسي اودوهم ځل به په اتم تاريخ دحج احرام وتړي دهغه متمتع په شان كوم چې هدى له ځان سره نه دبوتې .

(۱۰۳)قوله وقبله اى احرام التمتع قبل يوم التروية احب .يعنى كه يې له اتم تاريخ څخه وړاندي احرام وتاړه نوجائزده بلكه افضل دى ول چې په دي كې دعبادت طرف ته تلوراكول راځي .نوكله چې دى داخترپه ورځ حلق وكړي نوله دواړو احرامونو څخه حلاليږي ،ځكه چې ده دعمري احرام نه وو خلاص كړى اودحج احرام يې تړلى وو په دي وجه سره په لسم تاريخ له دواړو احرامونو څخه حلاليږي ،بيا په حج كې حلق داسي دى لكه په لمانځه كې سلام ګرځول لهذا په حلق كولو سره له دواړو احرامونو څخه حلاليږي .

(۱۰۴)وَلَاتَمَتُّعَ وَلَا قِرَانَ لِمَكِّيٍّ وَمَنْ يَلِيهَا(۱۰۵)فَإِنْ عَادَ الْمُتَمَتِّعُ إلَى بَلَدِهِ بَعْدَ الْعُمْرَةِ وَلَمْ يَسُقْ الْهَدْيَ بَطَلَ تَمَتُّعُهُ(۱۰۶)وَإِنْ سَاقَ لَا (۱۰۷)وَمَنْ طَافَ أَقَلَّ أَشْوَاطِ الْعُمْرَةِ قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ وَأَتَمَّهَا فِيهَا وَحَجَّ كَانَ مُتَمَتِّعًا(۱۰۸)وَبِعَكْسِهِ لَا (۱۰۹)وَهِيَ شَوَّالٌ وَذُو الْقَعْدَةِ وَعَشْرُ ذِي الْحِجَّةِ(۱۱۰)وَصَحَّ الْإِحْرَامُ بِهِ قَبْلَهَا وَكُرِهَ

ترجمه :اوتمتع اوقران نشته داهل مكې اوهغې ته نژدې اوسيدنكو دپاره ،بياكه واپس راغى متمتع دخپل ښار طرف ته له عمرې څخه وروسته اوهدى يې نه وبوتې نوباطليږي دده تمتع ،اوكه يې هدى له ځان سره

بوتې وه نو نه باطليږي ،او چاچې طواف وکړ دعمري لپاره له څلورو شوطونو څخه لږ له اشهر حج څخه وړاندې اوبيايې پوره کړل په اشهر حج کې او حج يې وکړ نو متمتع کرځي ،او ددې په عکس کې نه ګرځي ،او اشهر حج شوال او ذي قعده او ذي الحجې لس ورځې دي ،او صحيح دى دحج احرام تړل له دې څخه وړاندې مګر مکروه دى.

**تشريح:**(۱۰۴)يعنى داهل مکې او په مواقيتو کې داوسيدونکو دپاره حج قران او تمتع نشته بلکه ددوئ دپاره صرف حج افراد مشروع دى ،تمتع خو ددوئ لپاره په دې وجه سره نه دمشروع چې دالله تعالى ارشاد دى ﴿ ذلک لمن لم يکن أهله حاضري المسجد الحرام ﴾(يعنى دادهغو خلګو دپاره دى کوم چې دمسجدحرام له حاضرينو څخه نه دي )دذالک مشار اليه تمتع ده لهذا تمتع داهل مکه او په مواقيت کې داوسيدونکو دپاره مشروع نه ده .او ددوئ لپاره قران په دې وجه مشروع نه ده چې دقران په اداء کولو سره له دوو ممنوعه کارونو څخه ديوه ارتکاب کيږي په دې دول سره چې که هغه دحج او عمري دواړو لپاره له حرم څخه احرام وتړي نو دعمري په احرام کې خلل راځي ولى ځې دعمري ميقات حل ده حرم نه ده. او که له حل څخه دواړو احرام وتړي نو دحج په ميقات کې خلل راغى ولى چې دحج ميقات حرم دى حل نه دى .نو په اهل مکه او په مواقيتو په اوسيدونکو کې که څوک قران وکړي نو ګناه ګاريږي او پر ده دم لازميږي.

ف:دامام مالک رحمه الله په نزد له حرم څخه باهر په ميقاتونو کې داوسيدونکو دپاره تمتع مشروع ده ولى چې داخلګ دمسجد حرام له حاضرينو څخه نه دي .احناف ځواب ورکوي چې داخلګ دحرم دخلګو په څېر په ميقاتونو کې داوسيدولو په وجه سره دحرم له خلګو سره ملحق دي لهذا ددوئ هم هغه حکم دى کوم چې دحرم دخلګو دى ولى شرح التنوير:والمکي ومن فى حکمه اى من اهل داخل المواقيت يفرد فقط ولو قرن او تمتع جاز واساء وعليه دم جبر(الدر المختار على هامش ردالمحتار:۲/۲۱۳)

(۱۰۵)که دمتمتع لومړنى قسم (يعنى هغه متمتع کوم چې هدى له ځان سره نه ده بوتې ) دعمري دافعالو له اداء کولو څخه وروسته کورته واپس راغى او په کور کې څه موده اقامت وکړ او بيرته ولاړى او دحج افعال يې اداء کړل نو دا متمتع نه دى ولى چې متمتع هغه دى کوم چې په يوه سفر کې دوه عبادتونه اداء کړي حال داچې ده خوپه منځ کې المام صحيح (المام صحيح دشيخينو په نزد دادى چې له عمري کولو څخه وروسته په حرم کې په سرخرييلو سره ځان حلال کړي او کورته راشي دا هغه متمتع په حق کې ده کوم چې له ځان سره هدى نه وي بوتې او که يې هدى بوتې وه نو هغه که وطن ته راشي نو بيا هم دده المام صحيح نه دى )وکړ او په المام صحيح سره تمتع باطليږي.

(۱۰۶)قوله وان ساق الهدى لايبطل تمتعه ،يعنى که يې هدى له ځان سره بيولي وي نو په منځ کې خپل کورته په راتلو سره دشيخينو په نزد دده حج تمتع نه باطليږي په دې وجه چې دده المام صحيح نه دى ولى چې کورته په راتلو سره هم دى محرم دى ترڅو چې دده له طرفه هدى ذبح نه کړل شي .حال داچې دامام محمد رحمه الله په نزد باطليږي ولى چې دده په نزد ځان حلالول دالمام صحيح لپاره ضروري نه دى لهذا دالمام دصحيح والى په وجه سره دده حج تمتع باطل شو.

ف: دشیخینو قول راجح دی کمافی الدر المختار: ثم بعد عمرته عاد الی بلده وحلق فقد الم الماما صحیحا فبطل تمتعه ومع سوقه تمتع کالقارن، قال ابن عابدین: (قوله ومع سوقه تمتع) ای لایبطل تمتعه بعوده عندهما خلافا لمحمد (الدر المختار مع الشامیة: ۲/۲۱۵)

(۱۰۷) یعنی چاچې له اشهر حج څخه وړاندي دعمري احرام وتاړه بیایې دعمري لپاره څلور شوطه طواف نه وکړی چې اشهر حج داخلې شوې ده باقی مانده طواف او سعی په اشهر حج کې مکمل کړل بیایې په همدي کال دحج احرام وتاړه او حج یې اداء کړنو دا شخص متمتع دی پرده دتمتع دم واجب دي په دي وجه چې ده دعمري اکثر طواف په اشهر حج کې اداء کړو للاکثر حکم الکل نو ګویا ده دعمري ټول اعمال په اشهر حج کې اداء کړل.

ف: دامام شافعی رحمه الله په نزد احرام رکن دی لهذا په اشهر حج کې داحرام دنه وجود په وجه سره دا شخص متمتع نه شمارل کیږي. داحنافو په نزد ځکه چې احرام شرط دی لهذا له اشهر حج څخه یې تقدیم جائز دی او داحنافو په نزد داعمالو اعتبار دی چې دعمري افعال په اشهر حج کې وي.

(۱۰۸) قوله وبعکسه لا ای لو طاف العمرة اربعة اشواط قبل الاشهر ثم اتمها فیها لم یکن متمتعا، یعنی که چا د اشهر حج له دخول څخه وړاندي څلور یا زیات شوطونه اداء کړل بیا اشهر حج داخلې شوي نو اوس که دی حج هم وکړي نو دا شخص متمتع نه دی په دي وجه چې داکثر طواف له اشهر حج څخه وړاندي کړی دی نو ګویا ټول اعمال عمره یې له اشهر حج څخه وړاندي اداء کړي دي لهذا دا شخص متمتع نه دی ولی چې ده په اشهر حج کې حج او عمره جمع نه کړل نه حقیقتا او نه حکما.

(۱۰۹) له اشهر حج څخه مراد شوال، ذی القعده او ذی الحجې لومړی لس ورځې دي همدا شان له عبادله ثلاثه او عبدالله ابن زبیر رضی الله عنه څخه مروی ده نو ذا الحجه لسم تاریخ په اشهر حج کې شمارده ولی چې ددرکن حج یعنی طواف زیارت اول وخت دی او دکوم عبادت رکن دعبادت له وخت څخه وروسته نه وي لهذا دذوالحجې لسمه ورځ په اشهر حج کې شامله ده.

ف: مګر د امام ابو یوسف رحمه الله په نزد دذوالحجې لسم تاریخ په اشهر حج کې داخل نه دی ولی چې دلسم تاریخ په طلوع فجر سره دهغه کس په حق کې حج فوت کیږي چې هغه وقوف عرفه نه وي کړی حال داچې عبادت ترڅو چې وخت باقی وي نه فوت کیږي نو دده په نزد اشهر حج شوال، ذی قعده او دذا الحجې نهه ورځې او لس شپې دي. امام ابو یوسف رحمه الله ته ځواب ویل شوی دی چې وقوف عرفات په طلوع فجر سره په دي وجه فوت کیږي چې دنص په وجه په مخصوص وخت پسې موقت دی همدا وجه ده چې یوم الترویة له اشهر حج څخه ده مګر په دي کې وقوف عرفات جائز نه دی.

ف: دامام مالک رحمه الله په نزد ټوله ذی الحجه په اشهر حج کې شمارده لقوله تعالی ﴿ الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَعْلُومَاتٌ ﴾ اشهر دجمع په لفظ سره ذکر شوی دی او دجمع اطلاق لږترلږه پر دریو افرادو کیږي لهذا شوال، ذی القعده او ذی الحجه دري سره اشهر حج دي. امام مالک ته ځواب ورکړل شوی دی چې کله پر بعض باندي د کل اطلاق کیږي لکه رایت زیدا سنة کذا (ما زید په فلانکی کال ولیدی) حال داچې ده زید د دي کال په یوه ګړی کې لیدلی دی.

(۱۱۰)که چاله اشهرحج څخه وړاندې دحج احرام وتاړه نوداجائزدى په دې وجه چې احرام شرط دى لکه دلمانځه دپاره اودس ،کوم چې له دخول وخت څخه وړاندې هم صحيح دى په دې احرام سره حج صحيح کيږي مګرداسې کول (يعنى له اشهرحج څخه وړاندې احرام تړل )مکروه دي ولى چې دوخت ددېروالى په وجه سره په محظورات احرام کې دواقع کيدلوخطره ده ،دامام شافعى رحمه الله په نزداحرام رکن دى لهذاله وخت څخه وړاندې جائزنه دى .

(۱۱۱)وَلَوِ اعْتَمَرَ كُوفِيٌّ فِيهَا وَأَقَامَ بِمَكَّةَ أَوْ بِالْبَصْرَةِ وَحَجَّ صَحَّ تَمَتُّعُهُ (۱۱۲)وَلَوْ أَفْسَدَهَا فَأَقَامَ بِمَكَّةَ وَقَضَى وَحَجَّ لَا (۱۱۳)إِلَّا أَنْ يَعُودَ إِلَى أَهْلِهِ (۱۱۴)وَأَيُّهُمَا أَفْسَدَ مَضَى فِيهِ وَلَا دَمَ عَلَيْهِ (۱۱۵)وَلَوْ تَمَتَّعَ وَضَحَّى لَمْ يُجْزِئْ عَنِ الْمُتْعَةِ (۱۱۶)وَلَوْ حَاضَتْ عِنْدَ الْإِحْرَامِ أَتَتْ بِغَيْرِ الطَّوَافِ (۱۱۷)لَوْ عِنْدَ الصَّدَرِ تَرَكَتْهُ كَمَنْ أَقَامَ بِمَكَّةَ

**ترجمه**:که عمره وکړه کوفى شخص په اشهرحج کې اوپاتې شوپه مکه مکرمه کې ياپه بصره کې اوحج يې وکړنوصحيح ده دده تمتع ،اوکه يې عمره فاسده کړه اوبياپه مکه کې پاتې شويايې قضاء وکړه اوحج يې اداء کړنوصحيح نه ده ،مګرداچې واپس راشي دخپل اهل طرف ته ،اوپه حج وعمره چې کوم يوهم فاسدکړي دهغه افعال دې کوي اوپرده دم نشته ،اوکه يې تمتع وکړه اوقرباني يې وکړه نوداکفايت نه کوي له دم تمتع څخه ،اوکه ښځه حائضه شوه داحرام پروخت نواداء دې کړي له طواف څخه ماسوانورارکان ،اوکه دطواف صدرپروخت حائضه شوه نوهغه دې پرېږدي لکه هغه کس چې هغه مقيم شي په مکه مکرمه کې .

**تشريح** :(۱۱۱)که کوم کوفى کس (مراد افاقى دى )په اشهرحج کې عمره اداء کړه په مکه مکرمه يابصره (له بصري څخه مرادهرهغه ځاى دى چيرته چې دده اهل مقيم نه وي )کې يې اقامت اختيارکړيايې په همدې کال حج هم اداء کړنودده حج تمتع صحيح دى په مکه مکرمه کې دپاتې کيدلوپه صورت کې خوښکاره ده چې په يوه سفرکې يې دوه عبادتونه اداء کړل په دې وجه داحج تمتع شو.پاتې شوه په بصره کې دپاتې کيدلوصورت نوپه دې کې اختلاف دى ،دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپه دې صورت کې هم داحج تمتع دى ولى ترڅوچې خپل کورته واپس رانه شي نودده سفرقائم دى ،مګردصاحبينوپه نزدپه دې صورت کې داحج تمتع نه دى ولى چې له مکې مکرمې څخه دبصري طرف ته وتل کورته دتللوپه شان دي ،نودامام صاحب په نزدپرداسې کس باندې دم واجب دي اودصاحبينوپه نزدواجب نه دي .

**ف**:ددې مسئلې په نقل کولوکې دامام طحاوى اوامام جصاص اختلاف راغلى دى ،دامام طحاوى په نزددتمتع باقى پاتې کيدل دامام صاحب قول دى اودتمتع باطليدل دصاحبينوقول دى ،نوکه دطحاوى قول صحيح وګڼل شي نودامام ابوحنيفه رحمه الله قول مفتى به دى لماقال العلامة الحصكفي: كوفي اى آفاقي حل من عمرته فيهااى الاشهر وسكن بمكة اى داخل المواقيت اوبصرة اى غير بلده وحج من عامه متمتع لبقاء سفره (الدر المختار: ۲/ ۲۱۵).قال في الحقائق كثير من مشائخنا قالوا الصواب ماقاله الطحاوى وقال الصفار كثير اماجربنا الطحاوى فلم نجده غالطا وكثيرا ماجربنا الجصاص فوجدناه غالطا وقال الزيلعي والمسئلة الآتية تويده ماحكاه الطحاوى.او امام جصاص په مذکوره مسئله کې دامام صاحب اوصاحبينوترمنځ اتفاق ذکرکړى دى اوليکلي دي چې مذکوره شخص بالاتفاق متمتع دى دائمه ثلاثه ترمنځ هيڅ اختلاف نشته ،قال فخرالاسلام ان قول الجصاص هوالصواب وفي المعراج هوالصحيح وهوالاصح قال ابواليسر وهوالصواب لان محمدا ذكر المسئلة ولم يحك فيها خلاف ،اودعلامه شامى رحمه الله رجحان هم دامام طحاوى دقول طرف ته دى ،اوپه

فتاوى هنديه ۱/۲۴۰کې هم دامام صاحب قول ذکرکړی دی چې داکس متمتع دی اومتون هم پرهمدې باندې دي اوداکثرمشائخورأيه هم دامام طحاوی درأيې مطابق ده په دې وجه چې امام طحاوی اعلم بمذهب الامام دی ،همدارازکه دامام طحاوی قول واخيستل شې نودمذکوره اختلاف ثمره وجوب دم اوعدم وجوب دم کې معلوميږی چې دامام صاحب په نزدپه ده دې کس باندې دم تمتع لازميږي اودصاحبينوپه نزددم نه لازميږي اوپه دم لازمولوکې احتياط هم دی .

(۱۱۲)اوکه آفاقی کس عمره فاسده کړه بياپه بصره يامکه مکرمه کې مقيم شوبياېې په اشهرحج کې ددې فاسدې عمرې قضاء وکړه اوپه همدی کال يې حج هم اداء کړنوداحج تمتع نه دی ولی چې دلومړی عمرې په فاسده ولوسره دده داسفرختم شواوس ددې عمرې دقضاءپروخت څرنګه چې داکس په مکه مکرمه کې مقيم دی لهذاحج تمتع نشې کولی ولی چې په مکه مکرمه کې دمقيم کس لپاره تمتع جائزنه ده کمامر .

(۱۱۳)قوله الاان يعود ای لايکون فی صورة الافسادوالقضاء متمتعاالاان يعودالی اهله ،يعنی که دلومړی عمرې له فاسدولوڅخه وروسته کورته راغی بيايې په اشهرحج کې عمره اداء کړه بيايې حج هم اداء کړنوداکس بالاتفاق متمتع دی ولی چې کورته په تللوسره اوس داکس مکی نه دی افاقی دی اوافاقی کس حج تمتع کولی شې .

(۱۱۴)اوکه حج تمتع کونکې په حج اوعمره کې يوفاسدکړنوکوم يوچې يې فاسدکړی دی دهغه افعال دې اداء کړي ولی چې ددې له افعالواداء کولوڅخه بغيردده لپاره له احرام څخه وتل ممکن نه دی لهذاددهغه افعال اداء کول لازمي دي ،اواوس پرده دم تمتع هم نشته ولی چې ده په يوه سفرکې ددوعبادتونوفائده حاصله نه کړه ،البته دده پرذمه دم فساد اوجنايت واجبيږي .

(۱۱۵)که حج تمتع کونکې دعيدالاضحی پرورځ دقربانې په نيت سره دقربانۍ څاروی ذبح کړنودادتمتع له طرف څخه کفايت نه کوي ولی چې ده خواضحيه ذبح کړه حال داچې دم تمتع خوله اضحيې څخه علاوه بطورشکرواجب دي نوڅرنګه چې په دې دواړوکې مغايرت دی په دې وجه سره يوله هغه بل څخه کفايت نه کوي .

(۱۱۶)يعنی که ښځې ته داحرام ترلوپروخت باندی حيض ورغی نودادې غسل وکړي اواحرام دې وتړي ولی چې دغسل دنظافت دپاره دی دطهارت لپاره نه دی ،بياچې کله دافعال حج وخت راشې نوداحج ټول افعال اداءکولی شې ولی چې حضرت عائشه ﵂ په مقام سرف کې حائضه شوه نونبی کريم ﷺ ورته وفرمايل چې حاجې چې کوم ارکان کوي ته هم هغه اداء کړه مګردبيت الله طواف مه کوه ترڅوچې ته پاکه نشې ،اودبيت الله طواف په دې وجه سره نشې کولی چې طواف په مسجدحرام کې کيږي اودحائضې دپاره دخول مسجدجائزنه دی .

(۱۱۷)قوله ولوعندالصدرترکه ای لوحاضت عندطواف الصدرترکه ،يعنی که کومې ښځې ته له وقوف عرفات اوطواف زيارت څخه وروسته دطواف صدرپروخت حيض ورغی نوداطواف صدرپرېښودای اوکورته تلی شي اودطواف صدر دپرېښودلوپه وجه سره پردې دم وغيره هيڅ هم نه واجبيږي ولی چې نبی کريم ﷺ

حائضه ښځوته دطواف صدر دپریښودلواجازه ورکړي وه البته که له مکې مکرمې څخه له وتلوورانديپاکه شوه نوطواف صدربه کوي اوکه دبیوت مکه څخه دتیریدلووروسته پاکه شوه نودطواف صدردپاره دي پرته نه راګرځي ،کوم حکم چې دحائضې ښځې دی هغه دنفاسې ښځې هم دی.

ف:ښځه دحیض یانفاس په حالت کې طواف زیارت نشي کولی ترپاکیدلوانتظارکول ورباندي لازم دی لیکن که دي ته دویزي یادجهازدتاریخ مشکل پیش وو نوپه داسې صورت کې که دادناپاکۍ په حالت کې طواف وکړي نوداحنافوپه نزدطواف اداء کیږي البته پردي په حرم کې دم (یعنی اوښ)ذبح کول واجب دی.

قوله کمن اقام بمکة ای ترکه تر کاکترک من اقام بمکة ،یعنی حائضه ښځه دي طواف صدرپریږدي لکه چې دهغه کس دپاره دطواف صدرپریښودلوحکم دی کوم چې په مکه مکرمه کې مقیم شي یعنی مکه مکرمه خپل مسکن جوړکړي نودده پرذمه طواف صدرواجب نه دی ولی چې طواف صدردافاقیانودپاره دی ، اوداهغه وخت دی چې کوم یودذوالحجې له دیارلسم تاریخ څخه وړاندي دمقیم کیدلونیت وکړي ،اوکه چاله دیارلسم تاریخ څخه وروسته داقامت نیت وکړنودده پرذمه طواف صدرلازم دی.

## بَابُ الْجِنَايَاتِ

داباب دجنایاتوپه بیان کې دی

جنایات دجنایةٌ جمع ده شرعاًحرام فعل ته ویل کیږي خواه که په مال کې وي اوکه په نفس کې وي دلته مراددداسې فعل ارتکاب دی کوم چې داحرام یاحرم په سبب حرام وي .کله چې مصنف رحمه الله دمحرمینو له بیان څخه فارغ شونواوس محرمینوته پیښودنکې عوارض یعنی جنایات ،احصاراو دفوات احکام په راتلونکودریوبابونوکې بیانوي.

(۱۱۸)تَجِبُ شَاةٌ إِنْ طَيَّبَ مُحْرِمٌ عُضْوًا(۱۱۹)وَإِلَّا تَصَدَّقَ(۱۲۰)أَوْ خَضَبَ رَأْسَهُ بِحِنَّاءٍ أَوْ ادَّهَنَ بِزَيْتٍ(أَوْ لَبِسَ مَخِيطًا أَوْ غَطَّى رَأْسَهُ يَوْمًا (۱۲۱)وَإِلَّا تَصَدَّقَ(۱۲۲)أَوْ حَلَقَ رُبُعَ رَأْسِهِ أَوْ لِحْيَتِهِ(۱۲۳)وَإِلَّا تَصَدَّقَ كَالْحَالِقِ(۱۲۴)أَوْ رَقَبَتَهُ أَوْ إِبْطَيْهِ أَوْ أَحَدَهُمَا أَوْ مِحْجَمَهُ

**ترجمه**:واجب ده پسه که خوشبوولګوله محرم په پوره اندام باندي ،که نه نو صدقه دي وکړي ،یایې ورنګاوخپل سرپه نکریزویایې دزیتون تیل ولګول یایې په تن کړه ګنډل شوي جامه یایې پټ کړسرپوره ورځ ،که نه نو صدقه دي وکړي ،یایې وخرییو دخپل سرڅلورمه حصه یادږیري څلورمه حصه ،که نه نو صدقه دي وکړي دخرییونکې په شان ،یایې خپله غاړه یادواړه بغلونه یایویایې دښکرلګولو ځای.

**تشریح**:(۱۱۸)که کوم محرم په یو اندام (مثلاًسریالاس وغیره )یازیاتواندامونوباندي په یوه مجلس کې خوشبوئي ولګوله نوځرنګه چې داکامل جنایت دی په دي وجه پردي کس باندی دپسه ذبح کول لازم دی.

(۱۱۹)قوله او الاتصدق ای وان لم یطیب عضوا کاملابل طیب ،اقل منه تصدق ،یعنی که یې له یوه اندام څخه په کم باندي خوشبوئي ولګوله نود جنایت دنه کامل والی په وجه سره په دي کس د [illegible] البته صدقه کول لازم دي

ف:شرط دادی چې خوشبولګونکی به بالغ وی نوکه کوم هلک داحرام په حالت کې خوشبوئي ولګوله نوپرده هيڅ هم واجب نه دي كمافي شرح التنوير:(الواجب دم على محرم بالغ )فلاشئ على الصبي خلافاللشافعي (الدرالمختارعلى هامش الشامية:۲/۲۱۷)

ف:صرف عمداخوشبولګول جنايت نه ده بلکه خطاء ،نسيانا ،حالت اکراه اودخوب په حالت کې لګول شوي خوشبوئي هم جنايت دی نوکه داستلام رکن په وخت دچاپرلاس يامخ باندی خوشبوئي ولګيدله بیاهم پرده دم واجبيږي که په زيات مقدارسره وه اوکه په کم مقدارسره وه نوصدقه لازميږي كمافي الشامية:(قوله ولوناسيا)قال في اللباب ثم لافرق في وجوب الجزاء بين مااذاجنى عامدااوخطامبتدئااوعائدا ذاكرااوناسيا عالمااوجاهلا طائعااومكرهانائمااومتنبها (ردالمحتار:۲/۲۱۷)

ف:مصنف رحمه الله داقيدولګاوو چې خوشبوئي لګونکی به محرم وي ،نوداقيداحترازي دی نوکه چاله احرام څخه وړاندي خوشبوئي ولګوله بیاله احرام څخه وروسته داخوشبوله يوه عضوڅخه بل عضوته منتقل شوه نوپرده هيڅ هم لازم نه دي كمافي الشامية:وقيدبالمحرم لان الحلال لوطيب عضواثم احرم فانتقل منه الى آخر فلاشئ عليه اتفاقا (ردالمحتار:۲/۲۱۸)

ف:التطيب عبارة عن لصوق عين له رائحة طيبة ببدن المحرم اوبعضومنه ،نوکه يې خوشبوبوی کړه مګرعين خوشبوئي له بدن سره ونه لګوله نوهيڅ واجب نه دي.

ف:پرمحرم چې چيرته هم دم لازم وي نودده لپاره دپسه ذبح کول کفايت کوي مګرپه دووصورتونوکې اوښ ذبح کول واجب دی (۱)چې محرم له وقوف عرفه څخه وروسته جماع وکړي .(۲)چې محرم طواف زيارت دجنابت ياحيض يانفاس په حالت کې وکړي ،همداشان پرمحرم چې چيرته هم صدقه لازمه وي اودهغې مقدارمتعين نه وي نوله هغې څخه مرادنصف صاع غنم يايوه صاع خرماوی يااوربشې مراددي البته دسپږي اوملخ دمړه کولوپه صورت کې چې يې څومره خوښه وي صدقه دي کړي .(كمافي الهداية :۱/۲۸۰)

(۱۲۰)قوله اوخضب راسه اى تجب شاة ان خضب راسه الخ ،يعنی که محرم پرخپل سرباندي نکريزي ولګول نوپرده دم لازميږي ولی چې نکريزي خوشبوئي ده لقوله ﷺ ﴿الحناء طيب ﴾(نکريزي خوشبوئي ده)،همداشان که يې دزيتون تيل ولګول نوهم دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپرده دم واجبيږي ولی چې دزيتون تيل بې شکه چې خوشبوئي نه ده ليکن دخوشبوئي اصل اوريښه ده لهذادخوشبوئي په شان په دي کې هم دم واجبيږي .دصاحبينوپه نزدپرده صدقه واجبه ده ولی چې روغن زيتون خوشبوئي نه ده بلکه دخوراک له شيانوڅخه ده هودپراګندګې دلري کولولپنفع په کې شته لهذپرده صدقه واجبيږي ، همداشان که محرم ګنډل شوې جامه (قميص ،پرتوګ ،چپنه )پوره ورځ ياپوره شپه په تن کړه ياېې پوره ورځ سرپټ کړپه داسې حال کې چې داجامه اغوستل اوسرپټول په معتادطريقه سره وي نوپردي کس هم دم لازم دي ولی چې ارتفاق كامل دی.

ف:بايديادوساتل شي چې دروغن زيتون په باره کې چې دامام صاحب اوصاحبينوکوم اختلاف دی دادخالص زيتون په باره کې دی ،که يې په زيتون کې خوشبوئي هم ګډه کړه نوپه دي صورت کې اختلاف نشته بلکه بالاتفاق پرده دم لازميږي .اودخالص زيتون په باره کې ادامام صاحب قول راجح دی كمافي

الدر المختار: او ادهن اوبت او حل اي الشيرج ولو كاناخالصين لانهمااصل الطيب قال ابن عابدين :(قوله لانهمااصل الطيب )باعتبار انه يلقى فيهماالانوار كالورد والبنفسج فيصيران طيبا ولايخلوان عن نوع طيب ويقتلان الهوام ويلينان الشعرويزيلان التفث والشعث وهذاعندالامام والاعليه صدقة(الدر المختار مع الشامية: ۲/ ۲۱۹)

ف: كه محرم ګنډل شوي جامه په خلاف عادت طريقه سره په تن كړه مثلاله قميص څخه يې څادرجوړ كړوايې غوستى يايې له پرتوګ څخه ازارجوړ كړنوهيڅ هم لازم نه دي په دي وجه چې داد ګنډل شوي جامې په معنى كې نه دي ولى چې دګنډل شوي جامې اغوستل دادي چې دخياطت په واسطه سره دوه شيان حاصل شي اشتمال على البدن او استمساك لهذاله دي دواړوڅخه چې كوم شى هم منتفي وي نودي ته دګنډل شوي جامې اغوستنه نه ويل كيږي.

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزد دګنډل شوي جامې په تن كولوسره فورادم واجبيږي ځكه چې داداحرام له محظوراتوڅخه ده ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزدكه يې اكثره ورځ واغوستله نودم واجبيږي ځكه چې للاكثرحكم الكل .دامام صاحب دليل دادى چې نبى كريم ﷺ فرمايلي دي عليه دم ان لبس يوما(كه يې يوه ورځ ګنډل شوي جامه په تن كړه نوپرده دم دي ).

(۱۲۱)قوله والاتصدق اى وان لم يلبس مخيطا ولم يغط رأسه يوما كاملابل اقل من يوم تصدق ،يعنى كه محرم تريوي ورځې يايوي شپې لږوخت ګنډل شوي جامه په تن كړه يايې سرپټ كړنوپرده صدقه لازمه ده ځكه چې ارتفاق كامل نه دى نو دجنايت دكم والى په وجه سره دم نه واجبيږي بلكه صدقه واجبيږي .

(۱۲۲)قوله اوحلق ربع رأسه اى يجب دم ان حلق ربع رأسه ،يعنى كه محرم دسرڅلورمه حصه ياله دي څخه زياته ياڅلورمه حصه دږيري ياله دي څخه زياته وخريله نوپرده دم لازم دي ځكه چې دسريوه څلورمه يادږيري يوه څلورمه برخه خريل په ځينوعلاقوكې معتاددي لهذادجنايت دكامل والى په وجه سره پرده دم لازم دي .

(۱۲۳)قوله والاتصدق اى وان لم يكن قدر الربع بل اقل منه تصدق ،يعنى كه يې ترڅلورمې حصې كم وخريو نوپرده صدقه واجب ده ځكه چې له ربع څخه كم خريل دنه معتادوالى په وجه سره كامل جنايت نه دى لهذادم نه لازميږي بلكه صدقه لازمه ده .

لفظ كالحالق په محل نصب كې واقع دى دمصدر محذوف لپاره دصفتيت په بناء منصوب دى اى تصدق تصدقا كتصدق الحالق شعر رأس غيره ،يعنى له ربع سرڅخه كم سرخريونكي دي دومره صدقه وكړي څومره چې دبل سرخريونكى صدقه كوي ولى چې ده دبل دسرپه خريلوسره دپراګندګي په لري كولوارتفاق حاصل كړځكه چې داجنايت كامل نه دى لهذا پرده صرف صدقه ده .

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزدد حلق قليل په صورت كې هم دم واجبيږي ولى چې هرويښته داحرام په وجه سره امن حاصل كړى دى نوددريوويښتانوپه كېنلوسره دم لازميږي اوپه يوه ويښته كې ثلث دم واجب ده داحنافوپه نزدله ربع څخه دكم اعتبارنشته ولى چې له ربع څخه كم خريل معتادنه دي .

(۱۲۴)قوله رقبته الخ رقبته بيا ترمحجمه پوري داعبارت په محل دنصب كې دى پرربع راسه باندي عطف دى تقديردعبارت داده اوحلق رقبته اوابطيه الخ .يعنى كه محرم دخپلې غاړي ويښتان يادواړو بغلونويا ديوه

بغل ویښتان وخرییل یایې دشکرلګولو ځای وخرییونو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدپردي کس باندي دم لازم دي ولی چې ددي ځایونو حلق مقصود دی او دشکرلګولو ځای خرییل په دي وجه مقصود دي چې له دي څخه بغیرمقصود نه حاصلیږي .

**ف**:دصاحبینوپه نزددشکرلګولو ځای په خرییلوسره دم نه لازمیږي صدقه لازمه ده ولی چې دامقصودنه ده البته په دي خرییولوکې دخیریولري کولوتحقق راځي په دي وجه صدقه لازمه ده ،صاحبینوته ځواب ورکړل شوی دی چې شکرلګونکی ته ددي ځای خرییل مقصوددي لهذپه دي صورت کې دم لازمیږي ،دامام صاحب قول راجح دی کماقال الشیخ عبدالحکیم الشاولی کوتي:واختارقوله اصحاب المتون واختاره فی الفتاوی قاضیخان حیث قال ولوحلق موضع الحجامة کان علیه الدم فی قول ابی حنیفة رحمه الله وایضااختاره فی الشامی ونورالایضاح وابن الهمام فی الفتح (هامش الهدایة :۲۲۹/۱)

(۱۲۵)وفي أخذِشاربِهِ حُكُومَةُعَدْلٍ وفي شاربِ حَلاَلٍ او قَلْمِ أَظْفَارِهِ طَعَامٌ(۱۲۶)اوقَصِّ أَظْفَارِيَدَيهِ وَرِجْلَيهِ بِمَجْلِسٍ اويَدًا اورِجْلاً(۱۲۷)وَاِلاَّ تَصَدَّقَ كَخَمْسَةٍ مُتَفَرِّقَةٍ(۱۲۸)وَلاَشَيْءَ بِأَخْذِ ظُفْرٍ مُنْكَسِرٍ(۱۲۹)وَاِنْ تَطَيَّبَ اولَبِسَ او حَلَقَ بِعُذْرٍ ذَبَحَ شَاةً اوتَصَدَّقَ بِثَلاَثَةِ أَصْوُعٍ على سِتَّةٍ او صَامَ ثَلاَثَةَ أَيَّامٍ

**ترجمه**:اودبریتونوپه خرییولوکې دیوه عادل حکم دی اودحلال دبریتونوپه خرییولوکې یادده دنوکانوپه پري کولوکې خوراک دی ،یایې پري کړل دخپلو دواړولاسونو اوپښونوکان په یوه مجلس کې یادیوه لاس اویوې پښې ،که نه نوصدقه دي وکړي لکه په پنځومتفرقونوکانوکې ،اوهیڅ واجب نه دي دمات شوي نوک په پري کولوکې ،اوکه یې خوشبوئي ولګوله یایې ګنډل شوي جامه واغوستله یایې خرییل وکړل دعذرپه وجه سره نوذبح دي کړي پسه یادي صدقه کړي دري پیمانې پرشپږومسکینانو یادي روژې ونیسې دري ورځې .

**تشریح**:(۱۲۵)که محرم خپل بریتونه وخرییل نویوعادل کس چې کومه فیصله وکړي هغه دي صدقه کړي عادل کس به دربع لحیه په نسبت ورته ګوري چې خرییل شوې بریت دربع لحیه څومره حصه جوړیږي دهغه مطابق دي فیصله وکړي، اوکه محرم دحلال یعنی غیرمحرم بریتونه وریږي کړل یایې دغیرمحرم نوکان وریږي کړل نودصدقه فطرپه اندازه طعام دي ورکړي،دامام شافعی رحمه الله په نزدهیڅ هم واجب نه دي ،زموږدلیل دادی چې محرم دانسانې جسم دلویدونکو شیانوپه پري کولوسره داحرام دممنوعاتوارتکاب وکړولی چې دانسانې جسم لویدونکې شیان دحرم دونوپه شان دامن مستحق دي .

**ف**:دامسئله دامام محمد رحمه الله په مذهب متفرع ده که نه نو اصح داده چې ږیره اوبریت یوعضوده نودبریتوپه پري کولوسره صدقه لازمیږي اوکه محرم دحلال کس بریتونه پري کړل نودمحرم چې څومره خوښه وي صدقه دي وکړي کمافی فتح القدیر:واعلم ان هذاالفریع علی قول محمدوفی المبسوط خلافه والاصح انه لایجب الدم لانه طرف من اللحیة وهومع اللحیة کعضو واحدواذاکان الکل عضواواحدالایجب ممادون الربع منه شئ من الدم والشارب دون ربع اللحیة فحکمه الصدقة(فتح القدیر:۴۴۶/۲)

(۱۲۶)اوقص اظفارالخ داعبارت په ماقبل کې په هغه اموروباندي عطف ده په کوموکې چې پسه واجب دی ای تجب شاة ان قص محرم الخ ،یعنی که محرم ددواړولاسونو اوپښونوکان په یوه مجلس کې پري

كړل نو پر دوه يودم لازم دى ولى چې دا ارتفاق كامل دى ياځرنګه چې داتحاد مجلس په وجه سره دايو جنايت ګڼل كيږي په دي وجه يودم كافى دى ،اوكه په مجلس كې تعددوو نوپه دم كې به هم تعدد وي ،قوله او يدا ورجلا اى قص اظفار يد واحدة او رجل واحدة ،له يدا ورجل ځخه اظفار يدا واظفار رجل مراد دي ،يعنى كه يې صرف ديو لاس يا يو پښې نوكان پري كړل نو ياهم يودم لازم دى ولى چې په ديروځايونوكې ربع دكل په حكم كې وي ،او ديوه لاس يا يوې پښې نوكان دانسان دټولونوكانو يوه ربع ده.

(۱۲۷)قوله والاتصدق اى وان لم يكن كذالك بل قص اقل من خمسة اظفار ،يعنى كه يې له پنځو نوكانو ځخه كم پري كړل نو دهر نوك په بدله كې صدقه لازمه ده ،اوكه يې پنځه نوكان پري كړل مګر له لاس او پښو ځخه يې په متفرق ډول پري كړل نو دشيخينو په نزد صدقه لازمه ده اودامام محمد په نزد دم لازم دي ،دشيخينو په نزد ځرنګه چې په دي سره كمال راحت نه حاصليږي نو دكامل جنايت دنه تحقق په وجه سره پردوه دم لازم نه دي.

ف: دشيخينو قول راجح دى لمافى الهندية :ولو قلم خمسة اظافير من الاعضاء الاربعة المتفرقة تجب الصدقة لكل ظفر نصف صاع فى قول ابي حنيفة وابي يوسف (الهندية: ۱/۲۴۴)

ف: امام زفر په نزد كه ديوه لاس دري نوكان پري كړي نو هم دم واجبيږي ولى چې ديوه لاس دري نوكان دده اكثر دي وللاكثر حكم الكل ،امام زفرته ځواب وركړل شوى دى چې ديوه لاس نوكان دانسان دټولونوكانو قائم مقام دي نوكه دري نوكان ديوه لاس دنوكانو قائم مقام جوړكړاى شي نو دبدل بدل په رأيه سره مقررول لازميږي كوم چې جائزنه دى.

(۱۲۸)اوكه محرم مات شوى نوك لري كړنوپه دي كې هيڅ هم نشته ولى چې له ماتيدلو وروسته هغه نه لويږي لهذا اوس دادحرم دوچې درختې په څيرشو دكومې په پري كولو كې چې هيڅ واجب نه دي ،هدا ارزله پري كيدلو ځخه وروسته دانتفاع قابل هم نه دى په دي وجه دده په پري كولو كې هيڅ نه واجبيږي

(۱۲۹)له دي ځخه وراندي دغير معذورجاني (جنايت كونكي )دجنايت بيان وو په دي متن كې دعذرپه وجه سره دجنايت كونكي دجنايت بيان دى .يعنى كه چادعذرپه وجه سره خوشبوئي ولګوله ياپې ګنډل شوي جامه په تن كړه ياپې خپل سروخريونو دشريعت له طرفه دده ته اختيار دى كه يې خوښه وي نوپسه دي ذبح كړي يادي شپږمسكينانوته دري صاع (بحساب درهم ۲۷۰تولې اوبحساب مثقال ۲۷۳تولې )غنم صدقه كړي اوكه يې خوښه وي نو دري روژي دي ونيسي لقوله تعالى ﴿ فمن كان منكم مريضا اوبه اذى من راسه ففدية من صيام او صدقة او نسك ﴾ (يعنى كوم كس چې له تاسې ځخه مريض وي ياده لره ايذا وي له سر ځخه نوپر ده فديه واجب ده په روژه نيولو سره ياپه صدقه وركولو سره ياپه قرباني كولو سره )په ايت كريمه كې او دتخيير دپاره دى اونبى كريم ﷺ دايت مبارك همدا تفسير كړى دى كوم چې مو وړذكر كو .ايت مبارك دسر په باره كې نازل شوى دى دخوشبو او ګنډل شويو جامه حكم له ده ځخه دلالة معلوميږي.

## فصل

له دې ځخه وړاندې دخوشبوئي وغيره ذكروو اوس دجماع او دواعي جماع بيان فرمايې نوپه دواړوكې وجه دمناسبت داده چې خوشبوئي وغيره هم شهوت راپاروي ولې چې په خوشبوئي لګولو او دوېښتانو وغيره دپراګندګۍ (خيري) په لرې كولو كې يوقسم راحت اوينت دى نوګوياخوشبوئي وغيره وسائل جماع دي او دشي وسيله له شي ځخه مقدمه وي.

(۱۳۰) وَلَا شَيْءَ إِنْ نَظَرَ إِلَى فَرْجِ امْرَأَةٍ بِشَهْوَةٍ فَأَمْنَى (۱۳۱) وَتَجِبُ شَاةٌ إِنْ قَبَّلَ أَوْ لَمَسَ بِشَهْوَةٍ (۱۳۲) أَوْ أَفْسَدَ حَجَّهُ بِجِمَاعٍ فِي أَحَدِ السَّبِيلَيْنِ قَبْلَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ وَيَمْضِي وَيَقْضِي (۱۳۳) وَلَمْ يَفْتَرِقَا فِيهِ (۱۳۴) وَبَدَنَةٌ لَوْ بَعْدَهُ وَلَا فَسَادَ (۱۳۵) أَوْ جَامَعَ بَعْدَ الْحَلْقِ (۱۳۶) أَوْ فِي الْعُمْرَةِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ لَهَا الْأَكْثَرَ وَتَفْسُدُ وَيَمْضِي وَيَقْضِي (۱۳۷) أَوْ بَعْدَ طَوَافِ الْأَكْثَرِ وَلَا فَسَادَ

**ترجمه**: او هيڅ واجب نه دي كه چاوكتل دښځې شرمګاه ته په شهوت سره او دده مني ووتل، او په واجب دى كه يې مچه واخيسته يايې مس وكړ په شهوت سره، يايې فاسد كړ خپل حج په احد السبيلين كې په جماع كولو سره له وقوف عرفه ځخه وړاندې، او دحج افعال دې اداء كړي او قضاء دې راوړي، او دواړه دې جلا نه وي په قضاء كې، او بدنه واجب ده كه له وقوف ځخه وروسته وو او فاسديږي نه، يايې جماع وكړه وروسته له حلق ځخه، يا په عمره كې له اكثر طواف كولو ځخه وړاندې او عمره فاسديږي او دهغې افعال دې وكړي او قضاء دې راوړي، يايې له اكثر طواف ځخه وروسته جماع وكړه او عمره نه فاسديږي.

**تشريح**: (۱۳۰) يعنى كه محرم په شهوة سره دكومې ښځې شرمګاه ته وكتل چې په دې سره دده انزال وشونو پرده دم وغيره هيڅ واجب نه دي ولې چې دده له طرفه نه صورة جماع شته او نه معنى. صورة جماع داده چې نارينه خپل عضو تناسل دښځې په شرمګاه كې داخل كړي او معنى جماع داده چې نارينه او ښځه سره يو ځاى شي او بغير له ادخال ځخه انزال وشي.

(۱۳۱) كه چا مچه واخيسته يايې په شهوة سره مس وكړ نو كه انزال وي او كه نه وي پرده دم لازم دي ولې چې دا په احرام كې له ممنوعه شي ځخه په مقصودي طور باندې نفع اخيستل دي كوم چې منهى عنه دى ځكه چې دا هم يو قسم رفث دى.

**ف**: دامام شافعي رحمه الله په نزد په مچه اخيستلو او په شهوة سره په مس كولو كه انزال وشونو دده احرام فاسديږي دى احرام په روژه باندې قياسوي يعنى لكه ځرنګه چې په دې شيانو سره روژه فاسديږي همدارنګ حرام هم فاسديږي، احناف وايي چې فساد احرام له عين جماع سره تعلق لري له جماع ځخه ماسواپه نورو ممنوعه افعالو سره حج نه فاسديږي لكه حد زنا چې له عين زنا سره تعلق لري له نورو ممنوعاتو سره متعلق نه دى، هو په مچه وغيره كې هم يو نوعه رفث شته په دې وجه ددې شيانو په ارتكاب سره دم لازميږي، باقي په روژه كې چې ځرنګه شهوت پوره كول حرام دى او قضاء شهوت په انزال سره حاصليږي په دې وجه سره روژه هم فاسديږي.

(۱۳۲) قوله او افسد حجه اى تجب شاة ان افسد حجه، يعنى كه كوم محرم كس له وقوف عرفات ځخه وړاندې دكوم انسان سره په احد السبيلين كې جماع وكړه نو دده حج فاسد شو اوس پرده ديوه پسه ذبح كول يا داوښ او غوا يې ځخه ديوه اومه حصه لازمه ده. او دنورو حاجيانو په شان پرده دحج باقي مانده افعال اداء كول

واجب دي او په راتلونكې كال كې پردي كس ددي حج قضاء هم لازمه ده ولي چې دادسې كسانو (كوم چې احرام په حال كې جماع كړي وي) په باره كې نبي كريم ﷺ فرمايلي دي چې پردي دواړو دم لازم دي او دخپل دې حج اعمال دي اداء كړي او ائنده كال پردوئ دحج اعاده واجبه ده .

(۱۳۳) يعني مذكوره بالا حاجي (كوم چې له وقوف عرفه څخه وړاندي په جماع سره حج فاسد كړي وو) چې كله راتلونكى كال دحج قضاء كوي نو دده پره ښځه (له كومې سره چې ده په تيرشوي كال كې په جماع كولو سره حج فاسد كړي وو) هم قضاء لازمه ده اوس په قضاء راوړلو كې دوئ دواړه يوځاى تلاى شي جلا جلا تلل ضروري نه دي ولى چې جامع بين الزوجين (يعني نكاح) قائمه ده نو له احرام څخه وړاندي دافتراق خو هيڅ وجه نشته ولى چې تردي وخته پوري جماع جائزده او له احرام څخه وروسته كه څه هم جماع ممنوع گرځي مگر ديوځاى كيدلو په صورت كې به يوبل ته وريادوي چې له دي څخه وړاندي دجماع دمعمولي لذت په وجه سره موږ په ډيرمشقت كې ولويدلو په دي وجه به داخل له جماع څخه ډيرلري اوسيږو لهذا دافتراق هيڅ وجه نشته .

ف: له نوروائمه وڅخه دامام مالك رحمه الله په نزدپردوئ له خپل ښار څخه له وتلو وروسته جدائي لازمه ده .دامام زفر رحمه الله په نزدله احرام څخه وروسته جدائي لازمه ده ولى چې له حضرت عبدالله بن عباس اوعبدالله بن عمر رضي الله عنهم څخه همداشان مروى ده .دامام شافعي رحمه الله په نزدچې كله هغه ځاى ته ورسيږي چيرته چې دوئ په تيرشوى كال كې جماع كړي وه نوله هغه ځاى څخه پردوئ جدائي لازمه ده ځكه چې دتيرشوى كال دلذت په يادولو سره هسې نه چې بيا جماع وكړي .

(۱۳۴) قوله وبدنة لو بعدها اى تجب بدنة لو جامع بعد الوقوف بعرفة .يعني كه چاله وقوف عرفات څخه وروسته له حلق څخه وړاندي جماع وكړه نو دده حج نه فاسديږي ﴿لقوله ﷺ من وقف بعرفة فقدتم حجه ﴾(چاچې وقوف عرفات وكړنو دده حج پوره شو) او ښكاره خبره ده چې حقيقة تام والى مرادنه دى په دي وجه چې طوف زيارت ركن دى كوم چې تراوسه پاتې دى بلكه حكما تام والى مراددى چې اوس نه فاسديږي . البته جنايت څرنگه چې داعلى قسم څخه دى په دي وجه پرده بدنه لازمه ده، همداشان له حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه هم مروى ده .

(۱۳۵) اوجامع معطوف دى پرهغو جنايتونو په كوموكې چې پسه لازم دى نه پرهغو په كوموكې چې بدنه لازمه ده اى وتجب عليه شاة ان جامع بعد الحلق .يعني كه كوم محرم له حلق څخه وروسته جماع وكړه په دي شرط چې له تول طواف زيارت يا اكثر طواف زيارت څخه وړاندي يې كړي وي نو پردي كس پسه لازم دى ولى چې دښځو په حق كې تراوسه پوري احرام باقي دى .او څرنگه چې له ښځو علاوه دنوروشيانو په باره كې احرام پاى ته رسيدلى دى په دي وجه له دي جانب سره تخفيف كړل شوى دى چې دبدنې پرځاى پسه لازم دى

(۱۳۶) قوله اوفي العمرة اى تجب شاة ان جامع في العمرة .يعني كه چا عمره كوله څلورشوطه طواف يې لا نه وو كړي چې جماع يې وكړه نو دجنايت جماع په وجه سره به پسه ذبح كوي ولى چې په عمره كې طواف داسې

دی لکه په حج کې وقوف عرفه البته ځرنګه چې عمره سنت ده لهذا جنایت هغه مرتبه نه لري کومه چې په دحج په صورت کې لرله په دې وجه به دلته پسه ذبح کوي او هلته په حج کې به اوښ . او په جماع سره عمره فاسده شوه ولی چې جماع له رکن عمره یعنی طواف څخه وړاندې موجوده شوه نو دا داسې شول لکه په حج کې له وقوف عرفات څخه وړاندې جماع کول .نو داکس به دنورو عمره کونکو په څېر دعمرې باقی افعال (یعنی دطواف باقی مانده اشواط او سعی بین الصفا والمروة )اداء کوي او دفاسد شوي عمرې قضاء به راوړي .

(۱۳۷) قوله او بعد طواف الاکثر، معطوف ده پر هغو جنایتونو په کوم کې چې پسه لازم دی ای تجب علیه شاة ان جامع بعد طواف الاکثر، یعنی که عمره کونکې له اکثر طواف (یعنی څلور شوطه یا له دې څخه زیات طواف )کولو څخه وروسته له حلق څخه وړاندې جماع وکړه نو ددې کس عمره نه فاسدیږي ولی چې اکثر طواف یې کړی دی او اکثر دکل قائم مقام وي البته پر ده دم لازم دي ولی چې دده داسې عمل ارتکاب وکړ کوم چې په احرام کې ممنوع دی .

(۱۳۸)وَجِمَاعُ النَّاسِي كَالْعَامِدِ (۱۳۹) اَوْ طَافَ لِلرُّكْنِ مُحْدِثًا (۱۴۰) وَبَدَنَةٌ لَوْ جُنُبًا وَيُعِيدُ (۱۴۱) وَصَدَقَةٌ لَوْ مُحْدِثًا لِلْقُدُومِ وَالصَّدْرِ (۱۴۲) اَوْ تَرَكَ اَقَلَّ طَوَافِ الرُّكْنِ (۱۴۳) وَلَوْ تَرَكَ اَكْثَرَهُ بَقِيَ مُحْرِمًا (۱۴۴) اَوْ تَرَكَ اَكْثَرَ الصَّدْرِ (۱۴۵) اَوْ طَافَهُ جُنُبًا (۱۴۶) وَصَدَقَةٌ بِتَرْكِ اَقَلِّهِ

**ترجمه** : او په هېره سره دجماع کونکې جماع دقصدا جماع کونکې په شان ده ،یا یې طواف رکن وکړ یې له اوداسه ،او بدنه واجبیږی که یې دجنابت په حالت کې وکړ او طواف دې بیرته راګرځوي ،او صدقه واجبیږي که یې بې اودسه طواف قدوم یا طواف صدر وکړ ،یا یې پرېښودی له څلور وشوطونو څخه کم طواف رکن ،او که یې اکثر پرېښودی نو محرم پاته کیږي ، یا یې اکثر طواف صدر پرېښودی ،یا یې طواف صدر دجنابت په حال کې وکړ ،او صدقه واجب ده په اقل پرېښودلو کې .

**تشریح** :(۱۳۸)کوم محرم چې په هېره سره یا د خوب په حالت کې یا داکراه (چا په جماع کولو مجبور کړ)په حالت کې جماع وکړه نو دا د قصدا جماع کولو په حکم کې ده ولی چې په نفع اخیستلو کې ټول سره برابر دي .مګر دا باید یاد وساتل شي چې دنسیان ،خوب او اکراه په حالت کې جماع کول په وجوب کفاره کې دعمدا جماع په حکم کې ده په ګناه کې ددوئ حکم یو شان نه دی ولی چې دعمد په صورت کې ګناه شته حال دا چې په مذکوره صورتونو کې ګناه نشته .

(۱۳۹) او طاف للرکن معطوف دی پر هغو جنایاتو په کومو کې چې پسه لازم دی ای وتجب شاة ان طاف للرکن محدثا، یعنی که چا طواف زیارت بې اودسه وکړنو ځرنګه چې طواف زیارت رکن دی لهذا دنقصان د زیاتوالی په وجه سره دم لازم دي .

(۱۴۰) قوله وبدنة لو جنبا ای تجب بدنة لو طاف جنبا ،یعنی که یې طواف زیارت دجنابت په حالت کې اداء کړنو دشدت نقصان په وجه سره په دې کس باندې بدنه لازمه ده مګر بنه دا ده چې ترڅو چې دا کس په مکه کې وي دطواف زیارت اعاده دې وکړي ترڅو په کامل دول سره اداء شي .

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزد دا طواف بالکل معتبرنه دی ﴿ لقوله ﷺ الطواف بالبیت صلوة ﴾ لهذا دلمانځه په شان دطواف دپاره هم طهارت شرط دی او قاده ده چې اذافات الشرط فات المشروط. امام شافعي رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې دباری تعالی ارشاد ﴿ ولیطوفوا بالبیت العتیق ﴾ مطلق دی په کوم چې په خبر واحد سره زیادت کول جائزنه دي ،باقی په حدیث شریف کې دطواف په ثواب کې له لمانځه سره دبرابروالی تشبیه ده په حکم کې دبرابري تشبیه نه ده.

ف: په ځینونسخوکې داسې راغلی دي ،وعلیه ان یعید(یعنی دوجوب اعاده ذکرشته )نوشراحو داسې تطبیق ورکړی دی چې که یې طواف زیارت بې اودسه اداء کړنو اعاده مستحب ده او که یې دجنابت په حالت کې اداء کړنو اعاده واجب ده. بیا که یې دبې اودسې په صورت کې په کوم وخت کې هم اعاده وکړه او دجنابت په حالت داداء کولو په صورت کې په ایام نحر کې اعاده وکړه نوپرده دم لازمه نه دي .او که دجنابت په حالت کې داداء شوي اعاده یې له ایام نحر ځخه وروسته وکړه نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدپرده دم لازم دي او هدا اقول راجح هم دی کمافی الشامیة: قلت لکن اذا اعاد طواف الفرض بعد ایام النحر لزمه دم عند الامام للتأخیر وهذا ان کانت الاعادة لطواف جنابة الاالاشئ علیه کما لواعاده فی ایام النحر مطلقا کمافی الهدایة ومشی علیه فی البحر وصححه فی السراج وغیره (ردالمحتار:۲/۲۲۲)

(۱۴۱) قوله وصدقة لو محدثا للقدوم والصدر ای وتجب صدقة لو طاف محدثا للقدوم والصدر،یعنی که چا طواف قدوم یا طواف صدر یا کوم بل نفلی طواف بې اودسه وکړنوپردي کس دترک طهارت په وجه سره صدقه لازمه ده کومه چې به دترک طهارة دپاره جبیره وي ولی چې دطواف زیارت رتبه درکن والی په وجه سره له طواف صدراو طواف قدوم ځخه لوړه ده دهغه دبې اودسه اداء کولو په صورت کې دم واجبیږي نو داظهار تفاوت لپاره په طواف صدراو طواف قدوم کې صدقه واجبیږي.او که یې دجنابت په حالت کې طواف صدراداء کړنو ځرنګه چې جنایت لږاندازه لوی دی نوپرده دم لازم دي لیکن ځرنګه چې له طواف زیارت ځخه دده مرتبه کوچنی ده په دي وجه په پسه اکتفاء وشوه دوجوب بدنه امرونه شو.

(۱۴۲) اوترک اقل طواف الرکن ،معطوف ده پرهغو جنایاتو په کوموکې چې پسه لازم ده ای تجب شاة ان ترک الاقل من طواف الرکن ،یعنی که چا دطواف زیارت دري یاله دریو ځخه کم شوطونه پرینبودل بیایې له دي ځخه وروسته کوم نفلی یا واجب طواف هم ونه کړنودترک اقل په وجه سره نقصان کوچنی دی په دي وجه سره پرده دم لازم دي لکه ځرنګه چې دطواف زیارت دبې اودسه کولو په صورت کې ده.او که داکس خپل کورته ولاړی نو دواپس ګرځیدلو ضرورت نشته بلکه دم دي ولیږي.

(۱۴۳) او که یې دطواف زیارت ځلور یا زیات شوطونه پرینبودل نو ترڅو چې داکس داطواف پوره نه کړي دښځو په حق کې به دهیمشه دپاره محرم وي ولی چې طواف اکثرمتروک دی وللاکثرحکم الکل لهذا که داکس له تکمیل طواف وړاندي جماع وکړي نوپرده دم لازمیږي.

(۱۴۴) قوله اوترک اکثرالصدرای تجب شاة ایضا ان ترک اکثرطواف الصدر،یعنی که چا اکثرطواف صدرپرینبودی نو ځرنګه چې طواف صدرواجب دی لهذا دترک واجب یا ترک اکثرالواجب په وجه سره دم لازمیږي.

ف: مصنف رحمه الله دطواف صدر ذکر وکړ مګر دطواف قدوم ذکریې ونه کړ حال داچې دطواف قدوم هم همدا حکم دی کمافی الشامیة: تنبیه: لم یصرحوا بحکم طواف القدوم لوشرع فیه وترک اکثره او اقله والظاهر انه کالصدر لوجوبه بالشروع (ردالمحتار: ۲/۲۲۲)

(۱۴۵) قوله او طافه جنبا ای تجب شاة لو طاف طواف الصدر جنبا، یعنی که یې طواف صدر د جنابت په حالت کې اداء کړنو بیا هم پرده دم لازم دي ځکه چې طواف صدر په رتبه کې له طواف رکن څخه کم دی لهذا د طواف صدر په مذکوره صورتونو کې هغه واجب نه دي کوم چې د طواف زیارت په صورتونو کې واجب وو اظهار اللتفاوت.

(۱۴۶) قوله وصدقة بترک اقله ای تجب صدقة بترک اقل طواف الصدر، یعنی که چاد طواف صدر دري له دي څخه لږ شوطونه پرېښودل نو ځکه چې جنایت لوی نه دی لهذ پرده صدقه لازمه ده نو د هر شوط په بدله کې د نصف صاع غنم ورکړي.

(۱۴۷) او طاف للرکن محدثا وللصدر طاهرا في آخر أيام التشريق (۱۴۸) و دمان لو طاف للركن جنبا (۱۴۹) او طاف لعمرته وسعى محدثا ولم يعد (۱۵۰) او ترک السعي (۱۵۱) او أفاض من عرفات قبل الإمام

**ترجمه**: یایې طواف رکن بې اودسه وکړ او طواف صدر یې په اوداسه سره د ایام تشریق په اخر کې وکړ، او دوه دمه واجب دي که یې طواف رکن د جنابت په حالت کې وکړ، یایې طواف وکړ د عمرې د پاره یا سعی وکړه د بې اودسې په حالت کې او نه دي راګرځوي دا، یایې سعي پرېښوده، یا کښته شو له عرفاته له امام څخه وړاندې.

**تشریح**: (۱۴۷) قوله او طاف للرکن محدثا ای تجب شاة ان طاف للرکن محدثا، یعنی که چا طواف زیارت بې اودسه اداء کړ او د ایام تشریق په اخر کې یې طواف صدر په اوداسه اداء کړنو پرده بالاتفاق یو دم واجب دي ولی چې په دې صورت کې طواف صدر د طواف زیارت طرف ته نشي منتقل کیدلی په دي وجه چې طواف صدر واجب دی او د طواف زیارت اعاده د حدث اصغر په وجه سره واجب نه ده بلکه مستحب ده په دي وجه طواف صدر د طواف زیارت طرف ته د منتقل کولو هیڅ ضرورت نشته بلکه طواف صدر به په خپل ځای وی او طواف زیارت به په خپل ځای وي البته په بې اودسې سره د طواف زیارت د اداء کولو په وجه یو دم واجبیږي.

ف: مصنف رحمه الله دا قید ولګاوو چې طواف صدر د ایام تشریق څخه وروسته وکړي، په دي سره احتراز ده له هغه صورت څخه چې طواف صدر په ایام نحر کې وکړي ولی چې په دې صورت کې طواف صدر منتقل کیږي د طواف زیارت طرف ته نو د طواف زیارت په بې اودسه اداء کولو سره چې کوم دم واجب شوی وو هغه ساقطیږي ولی چې طواف صدر د طواف زیارت لور ته د منتقلیدلو په وجه سره ګویاده طواف زیارت په ایام نحر کې په طهارت سره اداء کړی دی لهذا دم نه واجبیږي، هو ترڅو چې داکس په مکه مکرمه کې وي نو د طواف صدر اعاده دي وکړي کمافی الشامیة: وان طاف للزیارة محدثا وللصدر طاهرا فان حصل فی ایام النحر انتقل الی الزیارة فتوان طاف للصدر ثانیا فلاشیئ علیه والافعلیه دم لترکه وان حصل بعد ایام النحر لاینتقل وعلیه دم لطواف الزیارة محدثا ولو طاف للزیارة محدثا وللصدر جنبا فعلیه دمان (ردالمحتار: ۲/۲۲۳)

(۱۴۸) قوله ودمان لو طاف للرکن جنبا ای یجب دمان الخ، یعنی که چا د جنابت په حالت کې طواف رکن اداء کړ او طواف صدر یې په طهارت سره د ایام تشریق په اخر کې اداء کړنو په دي صورت کې د امام ابو حنیفه

رحمه الله په نزد دوه دمه لازم دي او دصاحبینو په نزد یو دم لازم واجب دی لوی چې په دي صورت کې په داسې حال کې چې طواف زیارت یې د جنابت په حالت کې اداء کړی دی طواف صدر د طواف زیارت طرف ته منتقل کیږي ولې چې طواف زیارت مع الجنابت بمنزله عدم دی ځکه خوبې اعاده هم واجب ده نو کله چې طواف زیارة مع الجنابت بمنزله عدم ده نو طواف زیارت کوم چې د ایام تشریق په اخر کې شوی دی هغه به د طواف زیارت طرف ته په منتقل کولو سره داو ویل شې چې داد طواف زیارت اعاده ده اوس ګویا داکس د طواف صدر پرېښودونکی شواو د طواف زیارت له ایام نحر څخه موخرکونکی شونو یو دم خود طواف صدر پرېښودلو په وجه سره لازمیږي په دي کې خود تولو اتفاق دی او دوهم دم د طواف زیارت د موخر کولو په وجه سره واجب دی دادامام ابو حنیفه رحمه الله قول دی .صاحبین څرنګه چې د تاخیر طواف زیارت په وجه د دم قائل نه دي په دي وجه د دوئ په نزد یو دم لازم دی .هو په دي صورت کې داکس ترڅو چې په مکه مکرمه کې وي نو ده ته د طواف صدر د اعادی حکم دی لیکن وطن ته د واپس راتللو په صورت د احکم نشته او که یې د طواف صدر اعاده وکړه نو بیا بالاتفاق یو دم لازم دی .

ف: دامام ابو حنیفه رحمه الله قول راجح دی ولې چې دااصحاب متونو ،شروحو او اهل فتاوی اختیار کړی دی کمافي الهندیة: اذا طاف للزیارة جنبا وجبت علیه الاعادة فان طاف للصدر في اخر ایام التشریق على الطهارة وقع طواف الصدر عن طواف الزیارة وصار تارکا لطواف الصدر فیجب علیه دم لترکه وهذا بلا خلاف ویجب علیه دم اخر لتاخیر طواف الزیارة عند ابی حنیفة هکذا في المحیط (هندیه: ۱/۲۴۶)

(۱۴۹) قوله او طاف لعمرته معطوف دی پر هغو جنایاتو باندی په کوموکې چې دم واجب دی ای یجب الدم لو طاف المعتمر لعمرته محدثا ،یعنی که محرم د عمري طواف او سعی بې اودسه اداء کړل نو پرده دم لازم دی ولې چې ده طهارت پرېښنی دی کوم چې په طواف کې واجب دی .لیکن پرده د طواف او سعی اعاده لازمه نه ده ولې چې د عمري د رکن په اداء کولو سره دی حلال شواو نقصان هم لږ دی .او په اودسې سره په سعی کولو کې پرده هیڅ نشته ولې چې د سعی له داسې طواف څخه وروسته کړي ده کوم چې معتبر دی او خپله په سعی کې طهارت واجب نه دی .لیکن ترڅو چې په مکه کې وي د طواف اعاده دي وکړي ولې چې نقصان خو په هرصورت په کې راغلی دی ، بیا که ده اعاده وکړه نو دده پرذمه به هیڅ واجب نه وي ولې چې د اعادي په وجه سره نقصان رفع شو .

(۱۵۰) قوله او ترک السعی ،معطوف دی پر هغو جنایاتو په کوموکې چې دم واجب دی ای تجب شاة لو ترک السعی بین الصفا والمروة ،یعنی کوم کس چې سعی بین الصفا کلاً یا اکثر اشواط پرېږدي نو دده حج پوره دی ولې چې سعی واجب ده په کوم سره چې فسادنه لازمیږي البته د ترک واجب یا ترک اکثر الواجب په وجه سره دم لازم دی .

(۱۵۱) قوله او افاض من عرفات ای تجب شاة لو افاض من عرفات الخ ،یعنی که کوم محرم له عرفات څخه تر امام وړاندي یعنی له غروب شمس څخه وړاندي راکښته شو نو پرده دم لازم دی ولې چې تر غروب شمس پوري په عرفات کې پاته کیدل واجب دي او که له غروب څخه وروسته راکښته شو نو هیڅ هم واجب نه دي .

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزدله غروب شمس څخه وړاندي په راکښته کيدلوکې هم هيڅ نه واجبيږي ولې چې اصل وقوف رکن دی دوام رکن نه دی لهذا د ترک د دوام په وجه سره هيڅ نه واجبيږي. امام شافعي رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې دوام واجب دی ﴿لقوله ﷺ فادفعوا بعد غروب الشمس﴾ (له غروب شمس څخه وروسته راکښته شئ) فادفعوا امردی اوامر دوجوب دپاره دی او دترک واجب په وجه سره دم واجبيږي لهذا له غروب شمس څخه وړاندي د راکښته کيدلو په وجه سره دم واجبيږي (هدايه: ۲۵۶/۱)

(۱۵۲) أو تَرْكِ الْوُقُوفِ بِالْمُزْدَلِفَةِ (۱۵۳) أو رَمْيِ الْجِمَارِ كُلِّهَا (۱۵۴) أو رَمْيِ يَوْمٍ (۱۵۵) أو أَخَّرَ الْحَلْقَ أو طَوَافَ الرُّكْنِ (۱۵۶) أو حَلَقَ فِي الْحِلِّ (۱۵۷) وَدَمَانِ لو حَلَقَ الْقَارِنُ قبل الذَّبْحِ

**ترجمه**: يايې پريښودی وقوف دمزدلفې، يايې ټول رمي الجمار، يا ديوې ورځې رمی، يايې موخرکړ خريل ياطواف رکن، يايې حلق وکړ په حل کې، او دوه دمه واجب دي که حلق وکړ قارن له ذبح څخه وړاندي.

**تشريح**: (۱۵۲) قوله او ترک الوقوف بالمزدلفة اى تجب شاة لو ترک الوقوف بالمزدلفة، يعني که چا وقوف مزدلفه بلاعذر پريښودی نوځرنګه چې وقوف مزدلفه واجب ده په دي وجه پرده دم واجب دی البته که يې دعذر (مثلاً ضعف، ناروغي، يا ښځو دريې او ازدحام دخطر په وجه) په وجه سره پريښودی تو هيڅ نه لازميږي

(۱۵۳) قوله اورمي الجمار كلها اى ترک رمی الجمار كلها، يعني چا که دټولو ورځو (يعني دځلورو سره ورځو) رمی جمرات پريښوده نوپرده باندي دم واجب دی ولې چې ترک واجب متحقق شو البته دټولو دجنس ديوالي په وجه سره يودم لازم دی.

(۱۵۴) قوله اورمي يوم اى تجب شاة لو ترک رمی الجمار في يوم واحد، يعني که يې ديوې ورځې رمی پريښوده نوځرنګه چې دانسک تام دی اودنسک تام دپريښودلو په وجه سره دم لازميږي په دي وجه ده پرذمه دم واجبيږي.

ف: که دعيدله ورځې څخه علاوه دباقي ورځو ديوې جمرې رمی پريښوده نوپرده دهرې ډبرې په بدله کې صدقه لازمه ده يعني نصف صاع غنم يايوه صاع خرماوې لازمې دی ولې چې دپوره ورځې وظيفه ترک کول موجب دم دی نوله دي څخه کم موجب صدقه نه دی، البته ديوم النحر په ورځ که حاجي دجمره عقبه رمی پريښوده نوپرده دم لازم دی ولې چې پردي ورځ دجمره عقبه رمی نسک تام دی لهذا دي په پريښودلو سره دم واجبيږي. (هدايه: ۲۵۶/۱)

## ديوم الاضحى په اعمالوكې دترتيب حكم

(۱۵۵) قوله او اخر الحلق اى يجب الدم لو اخر الحلق، يعني که چا حلق رأس ياطواف رکن يعني طواف زيارت له ايام النحر څخه مؤخرکړ (يايې رمی جمرات مؤخرکړ يايې يو حکم له بل حکم څخه مقدم کړ حال داچې هغه حكما مؤخرو لکه له رمی جمرات څخه يې وړاندي سرو خريېو) نوپه دي ټولو صورتونو کې دامام ابوحنيفه رحمه الله

په نزد دم لازم دي ولې چې د ابن عباس رضي الله عنه قول دی چاچې کوم نسک تر بل نسک مقدم کړنو پر ده قرباني واجب ده. او د صاحبینو په نزد د نسک په تقدیم او تاخیر سره هيڅ نه لازميږي.

ف: دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لماقال الامام الرافعي: فيجب الترتيب بين الرمي ثم الذبح ثم الحلق لغير المفرد وبين الرمي ثم الحلق له (التقرير الرافعي على الشامية: ۲/۱۵۶)

ف: دعید په ورځ حجاج کرام څلور اعمال کوي، رمي، قرباني، حلق، او طواف زیارت، په دي څلورو کې د امام صاحب رحمه الله په نزد ترتیب واجب دی او د صاحبینو په نزد ترتیب واجب دی، د صاحبینو دلیل دادی چې کوم شی چې له خپل ځای څخه فوت کیږي د هغه تلافي په قضاء سره کیږي او د کوم شي تلافي چې په قضاء سره وشي په هغه کې له قضاء څخه ماسوا بل کوم شی واجب نه وي نو په نسک حج کې هم د تاخیر په وجه سره له قضاء څخه علاوه کوم بل شی نه واجبیږي. د امام صاحب رحمه الله دلیل دادی کوم نسک چې له کوم مکان سره خاص وی هغه له مکان څخه په موخر کولو پر ده دم لازمیږي نو همداشان کوم نسک چې له کومې زمانې سره خاص وي هغه له هغې زمانې څخه په موخر کولو سره هم دم واجبیږي.

(۱۵۶) قوله اوحلق في الحل اي يجب الدم لوحلق في الحل، یعنی که حاجی له حرم څخه دباندې په حل کې (مراددای چې له حرم څخه دباندي وي خواه که په حل کې وي یاغیر حل کې وي) سرو خریېنو پر ده د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دم لازم دی ولې چې د حلق رأس دپاره زمانه هم متعینه ده چې په ایام نحر کې به وي او مکان هم متعین دی چې په حرم کې به حلق کوي لهذا که چادوخت او مکان دواړو مخالفت وکړنو دوه دمه لازمیږي او که یې دیوه مخالفت وکړنو یو دم لازمیږي.

ف: د امام ابویوسف رحمه الله په نزد څرنګه چې حلق مؤقت بالزمان والمکان نه دی ولې چې نبی کریم ﷺ له صحابه کرامو رضي الله عنهم سره په حدیبیه کې محصر شوا و ټولو په حدیبیه یعنی غیر حرم کې سرونه وخریېل لهذا له حرم څخه دباندي په سرخریېلو کې هيڅ نه واجبیږي. امام ابویوسف رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې د حدیبیې بعض حصه په حرم کې داخله ده ممکنه ده چې نبی کریم ﷺ او صحابه کرامو رضي الله عنهم دي په همدې حصه کې سرونه خریېلي وي. د امام صاحب قول راجح دی لمافي الدرالمختار: اوحلق في حل بحج في ايام النحر فلو بعدها فدمان (الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ۲/۲۲۵)

ف: په عمره کې حلق په کومه زمانه پسې خاص نه دی بلکه په کوم وخت کې چې هم حلق وکړی بالاتفاق صحیح دی ولې چې عمره پخپله په کومه زمانه پسې خاصه نه ده، هو عمره څرنګه چې په مکان یعنی په حرم پسې خاصه ده لهذا د طرفینو په نزد حلق هم په مکان یعنی حرم پسې خاص ده. د امام ابویوسف رحمه الله په نزد په مکان پسې هم خاص نه دی، نو که معتمر له حرم څخه باهر شو او بیرته واپس راغی او په حرم کې یې حلق وکړنو بالاتفاق پر ده هيڅ هم واجب نه دي. د طرفینو قول راجح دی لمافي الدرالمختار: اوحلق في حل بحج في ايام النحر فلو بعدها فدمان اوعمرة لا اختصاص الحلق بالحرم ولا دم في معتمر خرج ثم رجع من حل الى حرم، قال ابن عابدين: اي يجب دم لو حلق للحج اوالعمرة في الحل لتوقته بالمكان وهذا عندهما خلافا للثاني (الدرالمختار مع الشامية: ۲/۲۲۵)

(۱۵۷) که حج قران کونکې له قرباني ذبح کولو څخه وړاندې سرو خریېنو پر ده د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دوه دمه دي یو دم د حلق او ذبح ترمنځ د ترتیب د پرېښودلو په وجه دی ولې چې د حلق وخت له ذبح

ځخه وروسته دی حال داچې ده له ذبح څخه وړاندې کړی دی او دوهم دم قران دی .دصاحبینو په نزد مړی یو دم یعنی دم قران واجب دی .

ف: دامام ابو حنیفه رحمه الله قول راجح دی لماقال العلامة الحصکفی: ویجب دمان علی قارن حلق قبل ذبحه دم للتاخیر ودم للقران علی المذهب (الدر المختار علی هامش الشامیة: ۲/۲۲۶)

## فصل

په حالت احرام کې ښکارکول یوداسې جنایت دی کوم چې په ماقبل کې دذکرشویو جنایتونوله نوع څخه مختلف دی په دې وجه سره یې داپه مستقل فصل کې ذکرکړی دی .اوځرنګه چې په دواړو قسمونوکې وحدت جنس شته په دې وجه یې دواړه تریوه باب لاندې ذکرکړل .

(۱۵۸) إن قتل محرم صيدا او دل عليه من قتله فعليه الجزاء (۱۵۹) وهو قيمة الصيد بتقويم عدلين في مقتله او اقرب موضع منه (۱۶۰) ثم يشتري بها هديا وذبحه إن بلغت قيمته هديا او طعاما وتصدق به كالفطر او صام عن طعام كل مسكين يوما (۱۶۱) وإن فضل اقل من نصف صاع تصدق به او صام يوما

**ترجمه**: که قتل کړ محرم ښکار یا یې وروښودی هغه کس ته کوم چې ښکار قتل کړنو پر ده جزاء شته ،او هغه قیمت دی د ښکار کوم چې دوه عادلان مقرر کړي دهغه دقتل کولو په ځای کې ،یا هغه ته په نږدې ځای کې نو وادې خلی په هغه سره هدی او ذبح دې کړي که یې قیمت هدی ته رسید و یادې طعام واخلې او صدقه دې کړي دفطرې په شان یادې روژه ونیسې دهر مسکین دطعام په عوض یوه ورځ ،او که زیات شو له نصف صاع څخه لږ نو هغه دې خیرات کړي یادې روژه ونیسې یوه ورځ .

**تشریح** :(۱۵۸)که محرم دوچې(خشکی) ښکار قتل کړیایې قاتل ته وروښودی هغه قتل کړ حال داچې قاتل ته له وړاندې څخه معلوم نه وو نو پر محرم قاتل او ښکار وروښودونکې دواړو باندې جزاء لازمه ده لقوله تعالی ﴿ لا تقتلوا الصيد وانتم حرم ومن قتله منكم متعمدا فجزاء مثل ما قتل من النعم ﴾(یعنی تاسې ښکار مه قتلوئ په داسې حال کې چې تاسې محرم یاست او که له تاسې څخه یې څوک قتل کړي په قصد سره نو پر ده بدله ده ددې قتل شوی په برابر له څارویو څخه). او په وروښودونکې باندې په دې وجه جزاء لازمه ده چې له حضرت قتاده ﷺ څخه روایت دی ﴿ انه اصاب حمار وحش وهو حلال واصحابه محرمون فقال النبي ﷺ لاصحابه هل اشرتم هل دللتم هل اعنتم فقالوا لا فقال اذا فكلوا ﴾(ابو قتاده ﷺ فرمایې چې ماوحشي حمار ښکار کړ په داسې حال کې چې زه حلال وم او ماملګري محرم وو بیانبی کریم ﷺ دوئ ته وویل ،ایاتاسې اشاره وکړه ؟ایاتاسې دلالت وکړ؟ایاتاسې اعانت وکړ؟هغوئ وویل :یا،نونبی کریم ﷺ وفرمایل: بیایې نوخورئ) وجه استدلال داده چې که دلالت دښکار په تحریم کې مؤثر نه وای نونبی کریم ﷺ به ولې دهغه په باره کې پوښتنه کوله. همداراز دښکار دلالت کونکې دښکار امن فوت کړی دی ولی چې ښکار دخپل وحشي والی او دخلګو له نظرونو څخه دپټ او سیدلو په وجه سره په امن کې دی او ددلالت په وجه سره امن زائلیږي.

ف:بیاپه دې کې داشان تعمیم دی چې محرم قاتل او ښکار وروښودونکې ته احرام یادوي قصداً قتل او دلالت کوي یا احرام یادنه وي ولی چې دااتلاف دی نو دادمالي غراماتو سره مشابه دی .او برابر دی که یې اول ځل

ښكار كړي وي ياعائد يعنى دوهم ځل يادريم ځل ښكاركونكى وي ولې چې موجب تاوان كوم چې صيد تلف كول دي په ابتداء اوعود كولو سره نه مختلف كيږي بلكه چې څرنګه يې هم تلف كړي جزاء واجبيږي كمافى الدرالمختار: اودل عليه قاتله بدأ اوعوداسهوا اوعمدامباحا او معلوكالعلية جزائه (الدرالمختار على الشامية: ٢/ ٢٣١)

ف: صيد هغه حيوان دى كوم چې دخپل اصل خلقت په اعتبار سره وحشي وي اودخپلو پښويا وزونو په ذريعه سره خپل حفاظت كوي .بيا صيد پردوه قسمه دى ،برى،بحرى ،برى هغه دى دكوم چې توالد اوتناسل اوأوسيدل په وچه كې وي اوبحرى هغه دى دكوم چې توالداوتناسل اوأوسيدنه په اوبوكې وي.بيابحرى ښكار دمحرم اوغيرمحرم دواړو دپاره حلال دى لقوله تعالى﴿ احل لكم صيد البحر وطعامه متاعا لكم وللسيارة ﴾(حلال كړل شوى دى ستاسې لپاره دبحر ښكار اودبحر خوراك ستاسې دفائدې لپاره اودټولو مسافرو لپاره)اوبرى دمحرم لپاره حرام دى لقوله تعالى ﴿ لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنتُمْ حُرُمٌ ﴾ (يعنى تاسې ښكار مه كوئ په داسې حال كې چې تاسې محرم ياست ).البته هغه حيوانان له دې څخه مستثنى دي كوم چې دموذى والى (ضرر رسولو)په سبب نبى كريم ﷺ دهغوئ دوژلو حكم كړى دى .

(١٥٩)دښكار جزاء دښكار قيمت دى كوم چې دوه عادل كسان مقرر كړي دراصل په جزاء كې دائمه واختلاف دى دشيخينو رحمهما الله په نزد دښكار مثل معنوي يعنى قيمت لازم دى ولې چې دمثل معنوي په مرادولو كې تعميم دى هغه ښكارته هم شامل دى دكوم چې نظيروي اوهغه ته هم شامل دى دكوم چې نظير نشته .اوپه كوم ځاى كې چې يې ښكار قتل كړى وي په هغه كې به دښكار قيمت لګوي كه يې په ديهات كې قتل كړى وي نوپه نږدې اباډۍ كې دې قيمت معلوم كړي ولې چې په اختلاف امكنه سره قيمتونه هم مختلف كيږي .قيمت به هم دوه داسې عادل كسان ايږدي كوم چې دښكار په قيمت لګولو كې بصيرت لري اعتبارا بحقوق العباد .

ف: له عادل څخه مراد دلته داسې شخص دى كوم ته چې دښكار په قيمتونو كې بصيرت حاصل وي هغه عادل مرادنه دى كوم چې دشهادت په باب كې معتبر دى كمافى الشامية: والمراد بالعدل من له معرفة وبصارة بقيمة الصيد لا العدل فى باب الشهادة(ردالمحتار: ٢/ ٢٣٢)

ف: دامام شافعى رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په نزد محرم چې كوم ښكار وژلى دى كه دهغه صورة مثل وي نومثل صورى دې وركړي لقوله تعالى﴿ فَجَزَاءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ ﴾(يعنى نوجزاء ده په مثل دهغه كوم چې يې قتل كړى دى له حيوانانو څخه) لهذا دهوسۍ اوګورکښ(يوقسم غوښه خوړونكى حيوان دى كوم چې ټوله ورځ په غاركې اوسيږي اودشپې دباندې راوځي اوستركې يې ډيرې كوچنۍ كوچنۍ وي)په بدله كې پسه لازم دى.دسوئ په بدله كې عناق (دپسه دشپږ مياشتو بچي) دى.دشترمرغ په بدله كې اوښ دى .ديربوع يعنى ځنګلي موږک په بدله كې جفره (يعنى دپسه دڅلورو مياشتو بچى )دى. اودكوم ښكار كه مثل صوري نه وو لكه مرغى ،كوتره وغيره نودمثل صوري اومثل معنوي دواړو دمجموعې دتعذر په وجه سره دامام محمد رحمه الله په نزد صرف مثل معنوي يعنى قيمت لازم دى .دشيخينو دليل دادى چې په ايت شريف كې له مثل څخه مثل معنوي مراددى ولې چې مثل معنوي په شريعت كې معهوداو معروف دى ،همداراز په كومو حيوانانو چې نظير نشته په هغوكې امام محمد رحمه الله هم مثل معنوي يعنى قيمت واجبوي ،همداراز

دمثل معنوي اخيستلوپه صورت کې تعميم دی ولی چې په دي وخت کې ايت مبارک هغوحيوانانوته هم شامليږي دکوموچې نظيرشته اوهغوته هم شامليږي دکوموچې نظيرنشته حال داچې دمثل صورۍ داخيستلوپه صورت کې صرف هغوحيوانانوته شامليږي دکوموچې نظيرشته لهذامثل معنوي مرادول اولی دی.

**ف**:دشيخينوقول راجح دی لماقال العلامة الحصکفي:والجزاء هوماقومه عدلان في مقتله اوفي اقرب مکان منه ان لم يکن في مقتله قيمة فاوللتوزيع لاللتخيير.قال ابن عابدين:واطلق في کون الجزاء هوالقيمة لشمل الصيدالذي له مثل وغيره وهوقوله وخصه محمدبمالامثل له فاوجب فيماله مثل مثله الخ(الدرالمختارمع الشامية:۲/۲۳۲)

(۱۶۰)بيادطرفينوپه نزدچې کوم قيمت پرقاتل باندي لازم شې په هغه کې ده لره اختياردی که داقيمت دومره وي چې په دي سره پسه وغيره اخيستل کيدای شونوپسه وغيره دي واخلې اوپه حرم کې دي ذبح کړي.اوکه يې خوښه وي نوپه دي قيمت سره دي غله واخلې هرمسکين ته دي دصدقه فطرپه شان نصف صاع غنم يايوه صاع خرماوي يااوربشې ورکړي اوکه يې خوښه وي دهرنصف صاع غنموپه بدله کې دي يوه ورځ روژه ونيسي لقوله تعالى ﴿لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ وَمَنْ قَتَلَهُ مِنْكُمْ مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِنْكُمْ هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ أَوْ عَدْلُ ذَلِكَ صِيَامًا لِيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِ﴾ (اوکوم څوک چې له تاسې څخه دی قتل کړي په قصدسره نوپرده بدله ده ددي وژل شوې په برابرله څارويوڅخه کوم چې تجويزکړي دوه کسان معتبرله تاسې څخه په دي ډول چې هغه دبدلې څاروی دي دنيازپه طورسره کعبې ته ورويسول شي ياپرده کفاره ده څومحتاجانوته خوراک ورکول يادديې برابرروژي ترڅوچې وڅکې سزادخپل کار).

(۱۶۱)اوکه په اخرکې له نصف صاع غنموڅخه لږغنم پاته شول مثلاربع صاع پاته شول نوده لره اختياردی که يې خوښه وي نوربع صاع غنم دي صدقه کړي يادي ددي په بدله کې هم يوه ورځ روژه ونيسي .روژه دنصف صاع غنموپه بدله کې ده مګردلته دربع صاع په بدله کې هم ديوې کاملې ورځې نيولوحکم دی نووجه يې داده چې له يوې ورځې څخه کم روژه مشروع نه ده.

(۱۶۲)وَإِنْ جَرَحَهُ أَوْ قَطَعَ عُضْوَهُ أَوْ نَتَفَ شَعْرَهُ ضَمِنَ مَا نَقَصَ مِنْهُ (۱۶۳)وَتَجِبُ الْقِيمَةُ بِنَتْفِ رِيشِهِ وَقَطْعِ قَوَائِمِهِ وَحَلْبِهِ (۱۶۴)وَكَسْرِ بَيْضِهِ وَخُرُوجِ فَرْخٍ مَيِّتٍ بِهِ (۱۶۵)وَلَا شَيْءَ بِقَتْلِ غُرَابٍ وَحِدَأَةٍ وَذِئْبٍ وَحَيَّةٍ وَعَقْرَبٍ وَفَأْرَةٍ وَكَلْبٍ عَقُورٍ وَبَعُوضٍ وَنَمْلٍ وَبُرْغُوثٍ وَقُرَادٍ وَسُلَحْفَاةٍ

**ترجمه**:اوکه يې ښکارزخمي کړيايې پري کړ دهغه اندام يايې پري کړي دهغه ويښته نوضامن دی دهغه نقصان چې په ده کې راغلی دی،اوواجبيږي قيمت دهغه دوزرپه پري کولوکې اودهغه دپښوپه پري کولوکې اودهغه دشيدوپه رالوښلوکې،اودهغه دهګۍ په ماتولوسره اودمره بچې په راتلوسره دهګې په ماتولوکې،اوهيڅ واجب نه دي دکارګه،تپوس،لړم،موږک،خوړي سپي،غوماشی،ميږی،کيکه، بيزوګی،اوکيشف په وژلوسره.

**تشريح**:(۱۶۲)يعنی که محرم ښکارزخمي کړيايې دښکارښې وکښلې يايې دښکارکوم اندام ورپري کړمګراوس هم هغه دخپل حفاظت قابل وو نوددي زخم وغيره په وجه سره چې دښکارپه قيمت کې څومره نقصان راغلی دی ښکارکونکی دهغه ذمه داردی دبعض پرکل په قياسولوسره کمافي حقوق العباد.ليکن داهغه وخت دی چې ښکارله همدي زخم څخه مړنه شې اوکه هغه مړشونوبيامحرم دټول قيمت ضامن دی.

ف: دا هم شرط دی چې محرم دقطع عضو قصد کړی وي که نه نو هيڅ نه لازميږي مثلاً محرم له پښې څخه کونړه خلاصوله چې په دې سره دهغې کوم عضو پرې شونو پرمحرم باندې هيڅ واجب نه دي همدا حکم دهغه قتل چې په هغه سره اصلاح مقصود وي کمافي شرح التنوير: (ووجب بجرحه ونتف شعره وقطع عضوه ما نقص) ان لم يقصد الاصلاح فان قصده كتخليص حمامة من سنور او شبكة فلاشيء عليه وان ماتت (رد المحتار: ۲/۲۳۳)

(۱۶۳) که محرم دمرغه وزرو کښل يا يې دښکار پښې ورپرې کړې دکوم په وجه سره چې ښکار دخپل حفاظت قابل نه شو پاتې نو په محرم ددې ښکار دټول قيمت ذمه واري دی ولې چې دآله حفاظت په ضائع کولو سره ښکاري دښکار امن فوت کړنو گويا ښکار يې ضائع کو په دې وجه سره دټول قيمت ذمه واري. قوله وحلبه اى تجب قيمة لبن الصيد، يعنې دښکار دشيدو په ضائع کولو کې هم قيمت لازم دی ولې چې شيدې دښکار له اجزاء څخه دي نو جزء په کل قياسيږي.

(۱۶۴) قوله وكسر بيضه اى تجب القيمة بكسر بيضه، يعنې که کوم محرم دښکار داسې هگۍ ماته کړه کومه چې خرابه نه وه نوپرده دهغه قيمت لازم دی ولې چې هگۍ دښکار اصل دی په کوم کې چې دښکار دجوړيدلو صلاحيت شته لهذا احتياطاً هگۍ دښکار په منزله کې ده. قوله وخروج فرخ ميت اى تجب القيمة في خروج فرخ ميت، يعنې که محرم هگۍ ماته کړه اوله هغې څخه مړبچې راووتی اودانه شوه معلومه چې به ماتيدلو څخه وړاندې مړشوی دی او که وروسته نوپرده دژوندي بچې قيمت لازم دی ولې چې کيدای شي چې داژوندی پيدا شوی وای مگر دراوتولو له وخت څخه وړاندې دماتيدلو په وجه سره مړشو.

(۱۶۵) يعنې محرم که مردارشيان خوړنکي کارگه، تپوس، مار، لړم، موږک، خوروری سپی، غومانبې، ميږی، کيکه، بيزوگې يا کيشف قتل کړنو پرقاتل هيڅ جزاء نشته ولې چې مار لړم سپی وغيره موذي شيان دي په دې وجه په دوئ کې جزاء نشته، دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد وحشي مانوس او خوروری او غير خوروری هر قسم سپيان په عدم جزاء کې سره برابردي ولې چې ددې ټولو جنس يو دی او په دې باب کې وحدت جنس معتبر دی، او په غومانبې وغيره نورحشرات الارض کې هيڅ قسم جزاء نشته ولې چې دا شيان نه ښکاردي او نه له انساني بدن څخه پيدا شوی دي.

(۱۶۶) وَيَقْتُلُ قَمْلَةً وَجَرَادَةً تَصَدَّقَ بِمَا شَاءَ (۱۶۷) وَلَا يُجَاوِزُ عَنْ شَاةٍ بِقَتْلِ السَّبُعِ (۱۶۸) وَإِنْ صَالَ لَا شَيْءَ بِقَتْلِهِ (۱۶۹) بِخِلَافِ الْمُضْطَرِّ (۱۷۰) وَلِلْمُحْرِمِ ذَبْحُ شَاةٍ وَبَقَرَةٍ وَبَعِيرٍ وَدَجَاجَةٍ وَبَطٍّ أَهْلِيٍّ (۱۷۱) وَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ بِذَبْحِ حَمَامٍ مُسَرْوَلٍ وَظَبْيٍ مُسْتَأْنَسٍ (۱۷۲) وَلَوْ ذَبَحَ مُحْرِمٌ صَيْدًا حَرُمَ وَغَرِمَ بِأَكْلِهِ (۱۷۳) لَا مُحْرِمٌ آخَرُ

**ترجمه**: او دسپږې او ملخ په قتل کولو کې دې صدقه وکړي چې څومره يې خوښه وي، او له پسه څخه دې تجاوند کوي دځناور په قتل کولو کې، او که ځناور حمله وکړه نوپرده هيڅ واجب نه دي دهغه په وژلو کې، په خلاف دمضطر، او دمحرم دپاره جائزدي دپسه، او غوا، او اوښ، او چرگې او کورنۍ هيلۍ ذبح کول، او پرده جزاء ده دپاموز کوترې او مانوسې اوسۍ په ذبح کولو کې، او که محرم ښکار ذبح کړنو هغه حرام دی او تاوان به ورکوي دهغه په خوړلو سره، نه بل محرم.

**تشريح**: (۱۶۶) چاکه سپږه مړه کړه نو څومره چې يې خوښه وي صدقه دې وکړي مثلاً يو موټ غله يا دوه دانې يو ټوټه وغيره دې ورکړي ولې چې سپږه دويښتانو په شان له بدن څخه پيدا کيږي نو دهغې په ليرې کولو کې

دخيرولېږي كول متحقق كيږي لهذا صدقه لازمه ده ،اوهمدا حكم دملخ دقتل كولوهم دى ځكه چې ملخ برى (په وچه كې اوسيدونكى) ښكاردى حضرت عمر ﷺ فرمايلي دي ،تمرة خير من جرادة (يوه خرماله ملخ څخه ښه ده )لهذايوه خرماوركول كافى ده .

ف:سپږه كې له خپل بدن څخه لېري كړه اومړه يې كړه نومذكوره بالاصدقه دي وكړي .اوكه سپږه پرځمكه لويدلې وه نودهغې په وژلوكې هيڅ واجب نه دي كمافى الجوهرة النيرة :هذااذااخذهامن بدنه اورأسه اوثوبه امااذااخذهامن الارض فقتلهافلاشيء عليه(جوهرة النيرة: ١/٢٢٦)

(١٦٧)كه چاځناورقتل كړنوپرده جزاء لازمه ده يعنى دده قيمت به معلوم كړي اووربه يې كړي مگرداقيمت به ديوه پسه له قيمت څخه زيات نه وي ولى چې دځناورقتل دوېنې تويولوپه وجه سره حرام اوموجب جزاء دى دهغه دغوښې دفاسدولوپه وجه سره نه دى ځكه چې دى غيرماكول دى اودوېنې تويولوپه وجه سره صرف دم واحدواجبيږي .البته په مأكول اللحم كې څرنگه چې فسادلحم هم شته نودهغه قيمت به واجب وي څومره چې هم وي .

ف:پورته ذكرشوى حكم په هغه وخت كې دى چې ځناوردچامملوك نه وي كه نه نو ددرندي دوه قيمتونه لازميږي .يوبه مالك ته وركوي اوپه دي كې تحديدهم نشته بلكه دپسه له قيمت څخه زياتيداى هم شي،اودوهم قيمت به دالله تعالى دحق په وجه سره وركوي داقيمت به دپسه له قيمت څخه زيات نه وي كمافى الشامية: كذالوكان معلما لايضمن مازادبالتعليم لحق الله تعالى امالوكان مملوكافيضمن قيمة ثانية لمالكه معلما (ردالمحتار: ٢/٢٣٣)

ف:امام زفر رحمه الله ځناورپه مأكول اللحم حيوان باندي قياسوي فرمايي دځناورچې څومره قيمت وي هغه به وركوي كه څه هم دپسه له قيمت څخه زيات وي.احناف وايي چې دځناورقيمت دپوست په لحاظ سره له پسه څخه نه زياتيږي اوپه حق ضمان كې پوست معتبردى دغوښې اعتبارنشته ولى چې غوښه خويې فاسده ده دكومې چې اعتبارنشته ،لهذادسلاطينو دتفاخرپه وجه سره كه دكوم ځناورقيمت زيات شي نودهغه اعتبارنشته .

(١٦٨)يعنى كه په كوم محرم باندي ځناورحمله وكړه نوكه له قتل كولوڅخه ماسوابله ددفاع كومه چاره نه وه نوپه قتل كولوسره يې په محرم باندي هيڅ جزاء نشته ولى چې محرم كه څه هم له تعرض ښكارڅخه ممنوع دى مگرله دفع داذى څخه ممنوع نه دى .

ف:امام زفر رحمه الله فرمايي چې په حمله كولوسره دځناوروعصمة نه زائليږي لكه چې كه دچااوښ پرچاحمله وكړه نوداوښ په قتل كولوكې قاتل ضامن دى .احناف ځواب وركوي چې په حمله كولوسره ځناوردمار،لړم وغيره موذى حيوانانوپه شان گرځي دكوم په وژلوكې چې ضمان نشته .

(١٦٩)كه محرم دښكاردغوښې په خوړلومجبورشونودقتل كولواوخوړلوپه صورت كې پرده جزاء لازمه ده ولى چې دالله تعالى په ارشاد ﴿ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ ﴾ (يعنى كوم كس چې له تاسې څخه مريض وي يادده لره له سرڅخه ايذاء وي نوپرده فديه واجب ده په روژه نيولوسره ياپه صدقه وركولوسره ياپه قرباني كولوسره)كې دممنوعات احرام دارتكاب جوازمقيد بالفديه دى

روايت كه څه هم دمعذور حالق په باره کې نازل شوی دی مګرپه دلالة النص سره په معذورحالق پسې مضطرهم ملحق كړل شوی دی.

ف: كه مضطرږوندی ښكاروموندا ودمسلمان مال يې وموندنودی دې ښكاوخوري دمسلمان مال دی نه خوري ولی چې ښكاردالله تعالی دحق په وجه سره حرام دی اومال مسلم دبنده دحق په وجه سره حرام دی نودحفاظت په اعتبارسره ترجيح دبنده حق ته حاصله ده ولی چې بنده محتاج دی اوالله تعالی غني دی.

(۱۷۰)قوله وللمحرم ذبح شاة اى يجوز للمحرم ذبح شاة الخ ،يعني كه محرم پسه ياغوايااوښ ياچرګه ياكورنۍ ايلۍ (له كورنۍ ايلۍ څخه مرادهغه ايلۍ ده كومه چې نه الوزي )ذبح كړه نوپرذابح (ذبح كونكي )باندې هيڅ جزاء نشته ولی چې دمحرم لپاره ښكاركول ممنوع دی حال داچې مذكوره بالاشيان په كورونوکې اوسېږي ښكارنه دي په دې وجه په ذابح باندې جزاء نشته.

(۱۷۱)قوله وعليه الجزاء اى يجب الجزاء على المحرم ،يعني كه محرم پاموزكوتره (دكومې په پښوباندې چې ډېري ښې وي) ياما نوسه اوسۍ ذبح كړه نوپرقاتل باندې جزاء لازمه ده داپه دې وجه سره چې دادخپل اصل خلقت په لحاظ سره وحشي اوښكاردي دعارضي انس په اعتبارسره ددوئ ذبح كول جائزنه دي لهذاددوئ په ذبح كونكي باندې جزاء لازمه ده.

(۱۷۲)كه محرم ښكارذبح كړنودده ذبيحه مرداره ده خوړل يې جائزنه دي ولی چې ذبح كول مشروع فعل دی اودافعل حرام دی لهذادامشروع ذبح نه شمارل كيږي .كه ذبح كونكي محرم له خپلې ذيبحې څخه څه خوراک وكړه سره له دې چې ددې مردارخوراک حرام دی نوپرده دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددده دومره اندازې غوښې قيمت واجب دی څومره چې ده خوړلې ده .صاحبين فرمايي چې له استغفار ماسواپرده هيڅ شی واجب نه دی ولی چې دمحرم داذبيحه مرداره ده اومردارپه خوړلوکې له استغفار څخه ماسواڅه تاوان نه واجبيږي .دامام ابو حنيفه رحمه الله دليل دادی چې دمحرم دذبيحې حرمت په دوه اعتباره سره دی يوخوله په دې وجه چې دده ذبيحه مرداره ده اوبل په دې وجه سره چې داذبيحه داحرام له ممنوعاتوڅخه ده ولی چې دده احرام دښكارحيوان له محل ذبح څخه ايستلی دی اوهمدې احرام محرم دذبح له اهل والی څخه ايستلی دی نوپه دې واسطوسره ددې ذبيحې حرمت دده داحرام طرف ته منسوب دی نوثابته شوه چې دمحرم له خپلې ذبيحې څخه خوراک داحرام له ممنوعاتوڅخه دی اوداحرام له ممنوعاتوڅخه دكوم ممنوع دارتكاب په وجه سره جزاء واجبيږي په دې وجه پرده ددې خوړل شوې غوښې قيمت بطورضمان واجب دی.

ف: دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافي الهندية :وان اكل بعدماادى الجزاء فعليه قيمة مااكل في قول ابى حنيفة رحمه الله (هندية:۱/۲۵۱)

(۱۷۳)اوكه له مذكوره بالاذبيحې څخه كوم بل محرم څه وخوړل نوباتفاق احناف پرده هيڅ هم واجب نه دي ولی چې دده خورک دده داحرام له ممنوعاتوڅخه نه دی لهذاپرده په ضمان هم واجب نه وي.

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزدكه محرم دكوم غيرمحرم لپاره ښكارذبح كړنودي غيرمحرم لپاره داذبيحه حلاله ده ولی چې ذبح كول حقيقة موجوددي لهذادابه په حلت کې موثره وي البته دذابح لپاره حلال نه ده ولی چې دده دمنهي عنه عمل ارتكاب كړی دی .داحنافو دليل دادی چې الله تعالی دمحرم ذبح ته قتل ويلې

دی لکه چې فرمايي ﴿ لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ﴾ نو د محرم ذبح کول ذبح نه شمارل کيږي نو کله چې د محرم ذبح کول ذبح نه ده نو دده ذبح مرداره ده او د مردار خوړک د هيڅ چا د پاره جائز نه دی .

(۱۷۴) وَحَلَّ لَهُ لَحْمُ مَا صَادَهُ حَلَالٌ وَذَبَحَهُ إِنْ لَمْ يَدُلَّ عَلَيْهِ وَلَمْ يَأْمُرْهُ بِصَيْدِهِ (۱۷۵) وَيَذْبَحُ الْحَلَالُ صَيْدَ الْحَرَمِ قِيمَتُهُ يَتَصَدَّقُ بِهَا لَا صَوْمٌ (۱۷۶) وَمَنْ دَخَلَ الْحَرَمَ بِصَيْدٍ أَرْسَلَهُ (۱۷۷) فَإِنْ بَاعَهُ رَدَّ الْبَيْعَ إِنْ بَقِيَ وَإِنْ فَاتَ فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ (۱۷۸) وَمَنْ أَحْرَمَ وَفِي بَيْتِهِ أَوْ قَفَصِهِ صَيْدٌ لَا يُرْسِلُهُ

**ترجمه** :او حلال ده د محرم لپاره (د هغه ښکار غوښه) کوم چې ښکار کړي حلال کس او ذبح يې کړي که محرم ښکار ور ښودلی نه وي او نه يې امر کړی وي د ښکار کولو ،او واجب ده د حلال کس په ذبح کولو سره د حرم ښکار لره د هغه قيمت کوم چې به دی خيرات کوي نه روژې ،او کوم کس چې داخل شي حرم ته له ښکار سره نو هغه دې پريږدي ،نو که يې خرڅ کړ نو بيع دې رد کړي که ښکار باقي وو او که مړ شوی وي نو پر ده جزاء شته ،او کوم کس چې احرام وتړي او د هغه په کور کې يا په قفص کې ښکار وي نو هغه دې نه پريږدي .

**تشريح** :(۱۷۴) که کوم غير محرم له حرم څخه د باندې ښکار وکړ نو محرم ته د هغه غوښه خوړل جائز ده په دې شرط چې دې محرم به غير محرم ښکار ته په دلالت کولو سره ښکار نه وي ور ښودلی او نه به يې د ښکار حکم ورته کړی وي ولی چې صحابه کرامو ﷺ د محرم به حق کې د ښکار د غوښې د خوړلو په باره کې مذاکره وکړه نو نبی کريم ﷺ وفرمايل لاباس به (يعنی په دې کې څه حرج نشته).

ف :امام شافعي او امام مالک رحمهما الله تعالی فرمايي چې که غير محرم د محرم د پاره ښکار وکړ نو محرم ته د دې خوړک جائز نه دی لقوله ﷺ ﴿ الصَّيْدُ حَلَالٌ لَكُمْ مَا لَمْ تَصِيدُوهُ أَوْ يُصَادَ لَكُمْ ﴾ (يعنی ښکار حلال دی په دې شرط چې تاسې يې خپله ښکار نه کړي يا ستاسې د پاره ښکار نه کړل شي ).احناف ځواب ور کوي چې دا په دې صورت باندې محمول دی چې ښکاري د محرم په ويناسره ښکار وکړي ولی چې حضرت قتاده ﷺ د خپل ځان او ملګرو لپاره حمار وحشی ښکار کړی وو بيا نبی کريم ﷺ د دوا رو د پاره خوراک مباح ګرځولی وو .

(۱۷۵) قوله ويذبح الحلال صيد الحرم ای تجب قيمة بذبح الحلال صيد الحرم ،يعنی که غير محرم د حرم ښکار ذبح کړ نو پر ده د ښکار د قيمت په اندازه سره جزاء لازمه ده هغه به په فقراؤ صدقه کوي ولی چې ښکار د حرم په سبب سره د امن مستحق وو ښکاري دده امن برباد کړ .او که دا کس د ښکار د قيمت په عوض کې روژې نيول غواړي نو دا جائز نه ده ولی چې د ښکار قيمت يو تاوان دی کفاره نه ده په دې وجه دا د مالی تاوان سره مشابه ده او مالی تاوان که څوک په روژو سره اداء کول غواړي نو نه اداء کيږي .

(۱۷۶) که کوم کس خواه که محرم وي او که غير محرم وي د ښکار له حيوان سره حرم ته داخل شو نو هغه حيوان که دده په لاس کې وي په حرم کې يې پريښودل واجب دي ولی چې دا اوس د حرم ښکار شو او د حرم د ښکار والی په سبب سره د امن مستحق شو لهذا د دې پريښودل ضروري ده ترڅو دده امن برحال شي .

ف :د امام شافعي او امام مالک په نزد د داسې ښکار پريښودل لازم نه دي ولی چې پريښودل د شريعت حق دی او ښکار د مالک حق دی او د شريعت حق د چا د مملوک شي په باره کې نه ظاهره کيږي ځکه چې بنده محتاج دی .احناف ځواب ور کوي چې حرم شريف ته د ښکار په داخلولو سره هغه د امن مستحق ګرځي لقوله تعالی ﴿ ومن دخله کان آمنا ﴾ لهذا د هغه پريښودل لازم دی ولی چې په مقيد ساتلو کې د هغه امن نه برحاله کيږي .

(۱۷۷)چاكه ښكارحرم ته داخل كړاوخرڅ يې كړنودابيع دي ردكړي په دي شرط چې هغه ښكاربه موجودوي ولى چې دابيع ناجائزه ده په دي وجه چې په دي كې ښكارته تعرض شوى دى اوښكارته په حرم شريف كې تعرض كول حرام دى لهذاابيع هم ناجائزه ده په دي وجه ددي ردكول واجب دي .اوكه ښكارمړشونوپه خرڅونكې باندي دده تاوان اداء كول واجب دى يعنى دده قيمت دي صدقه كړي ولى چې دبيع ردكول خودښكاردمړه كيدلوپه وجه سره اوس متعذرشوفنزل منزلة الاتلاف .

(۱۷۸)كه چااحرام وتاړه په داسې حال كې چې دده په كوركې ياپه پنجره كې له ده سره دښكارحيوان وو نوددي ښكار پريښودل واجب نه دي ولى چې په محرم خوښكارته تعرض كول حرام دي حال داچې محرم خوپه دي صورت كې ښكارته متعرض نه دى ولى چې دښكارحيوان خوپه كوركې محفوظ دى ياپه پنجره كې محفوظ دى .

ف:دامام شافعى رحمه الله په نزدپه دي صورت كې هم دښكارارسال لازم دى ولى چې په خپل ملك دښكارساتلوپه وجه سره داكس ښكارته تعرض كونكى شمارل كيږي .احناف ځواب وركوي چې صحابه كرام رضي الله عنهم به حج ته تلل اودهغوئ به كورونوكې به له سوائموڅخه ماسوانورحيوانان موجودول اودامنقول نه ده چې هغوئ به داحيوانان پريښودل اوپرهمدي باندي ترنن ورځې پوري دامت عملي اجماع ده لهذادداسې ښكارپريښودل لازم نه دي .

(۱۷۹)وَلَوْ أَخَذَ حَلَالٌ صَيْدًا فَأَحْرَمَ ضَمِنَ مُرْسِلُهُ (۱۸۰)وَلَوْ أَخَذَهُ مُحْرِمٌ لَا يَضْمَنُ (۱۸۱)فَإِنْ قَتَلَهُ مُحْرِمٌ آخَرُ ضَمِنَا وَرَجَعَ آخِذُهُ عَلَى قَاتِلِهِ (۱۸۲)فَإِنْ قَطَعَ حَشِيشَ الْحَرَمِ أَوْ شَجَرَهُ غَيْرَ مَمْلُوكٍ وَلَا مِمَّا يُنْبِتُهُ النَّاسُ ضَمِنَ قِيمَتَهُ إِلَّا فِيمَا جَفَّ (۱۸۳)وَحَرُمَ رَعْيُ حَشِيشِ الْحَرَمِ وَقَطْعُهُ إِلَّا الْإِذْخِرَ

**ترجمه**:اوكه ونيوى حلال كس ښكارلره بياپې احرام وتاړه نوضامن دى دهغه پريښودونكى ،اوضامن نه دى كه نيولى وو هغه كوم محرم ،بياكه قتل كړهغه كوم بل محرم نودواړه ضامنان دي اورجوع به كوي نيونكى پردي قاتل باندي ،اوكه يې بري كړل دحرم وابنه يادرخت غيرمملوكه اوهغه داسې وه چې خلګونه كرله نوضامن دى دهغه دقيمت مګركه وچ وو ، اوحرام دى دحرم په وښوكې څرول اودهغوپرې كول مګراذخرنومى وابنه .

**تشريح**:(۱۷۹)كه كوم غيرمحرم ښكارونيوى بيادہ احرام وتاړه بياكوم بل چاددي محرم له لاس څخه ښكاروازخيستى اوازاديې كړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدښكارپريښودونكى دمالك دپاره ضامن دى صاحبين فرمايې چې ضامن نه دى ولى چې پريښودونكې آمربالمعروف اوناهى عن المنكردى كوم چې يونيک كاردى چې دهغه په باره كې ارشادبارى تعالى دى﴿ ماعلى المحسنين من سبيل ﴾(يعنى كوم چې نيک كاركونكې دي پرهغوئ ګرفت اومواخذه نشته ).دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادى چې ښكاركونكې له احرام څخه وړاندي ښكاركړى وو چې په هغه سره دى دښكارمالک جوړشوى وو اوس ښكارپريښودونكې دده محترم ملک تلف كړپه دي وجه دى دقيمت ضامن دى .

ف:فتوى دصاحبينوپرقول ده لمافى الدرالمختار:ولواخذحلال صيدالاحرام ضمن مرسله من يده الحكمية اتفاقاومن الحقيقة عنده خلافالهماوقولهمااستحسان كمافى البرهان ,وقال ابن عابدين :ونظيره الاختلاف فى كسرالمعازف اى الات اللهو كالطنبوروقال فى

البحروهويقتضي ان يفتى بقولهماهنالان الفتوى على قولهمافى عدم الضمان بكسر المعازف واشار الشارح الى ذالك لان الفتوى على الاستحسان الخ (الدر المختار مع الشامية: ۲/ ۲۴۱)

(۱۸۰)اوکه کوم محرم کس ښکارونیوی بیادده له لاس څخه کوم بل چاازادکړنومرسل بالاتفاق ضامن نه دی ولی چې محرم دښکارپه نیولوسره دښکارمالک نه وو جوړشوی په دي وجه چې ښکارکول دارشادباری تعالی ﴿ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا ﴾ په وجه سره حرام دی لهذاپرېښودونکې دده محترم ملک نه ده تلف کړی.

(۱۸۱)که دښکارنیونکې محرم په لاس کې دښکارحیوان وو اوکوم بل محرم هغه قتل کړنو دادواړه ددي ضامن دي په هریوه باندي پوره پوره جزاء لازمه ده ولی چې لومړنی ښکارته په دي ډول تعرض کړی چې دهغه امن يې زائل کړی دی اوښکارته تعرض کول داحرام له ممنوعاتوڅخه دی لهذاپرده ضمان شته .اودوهم داتعرض مستحکم کړولی چې که ده نه وای قتل کړی نوممکنه وه چې لومړنی دښکارپه پرېښودلوسره ښکارته تعرض ختم کړی وای په دي وجه پرده هم ضمان لازم دی .هولومړنی محرم چې څومره تاوان اداء کړي هغه به له هغه بل محرم څخه اخلي ولی چې دمحرم ښکارکول هغه دضمان سبب ګرځي کوم وخت چې کله له هغه سره هلاکت متصل شي که يې ښکار پرېښودی نوضمان واجب نه دی نوکوم ضمان چې علی شرف السقوط وو دوهم هغه مستحکم کړپه دي وجه سره اول محرم چې څومره ضمان اداء کې هغه به له هغه بل څخه اخلي.

(۱۸۲)قوله فان قطع حشيش الحرم ،څرنګه چې داځای دتفریع نه دی ولی چې متفرع علیه نشته لهذادفاء پرځای واوذکرکول په کاروو ای وان قطع حشيش الحرم الخ ،یعنی که چادحرم وابنه پری کړل یایې داسې درخته پري کړه کومه چې دچاملک نه ده اوحال داچې هغه په خپله ښنه کیدل یعنی خلګونه ښنه کول نودداسې وښواودرختې دپري کولوپه صورت کې پرده دهغه قیمت واجب دی ولی چې دحرم په سبب سره دوښواودرختو حرمت ثابت دی اونبی کریم ﷺ فرمایلي دي چې دحرم تازه وابښه دي نه پري کیږي اونه ددهغه څوڅان پري کیږي . البته کوم چې وچ شي نوهغه څرنګه چې لویدونکې نه دي عام دسوځیدلوپه بوټوکې حساب دي لهذاپه هغوسره انتفاع اخیستل جائزدي .

ف:دحرم دوښووغیره دپري کولوپه صورت کې داتفصیل زده کول ضروري دی چې دحرم وابنه پردري قسمه دي .یوقسم هغه وابنه دي کوم چې چاپه محنت کولوسره کرلي وي ،دهغوپري کول بالاتفاق جائزنه دي .دوهم قسم هغه وابنه دي چې چاخوکرلي نه وي مګردهغووښوله جنس څخه وي کوم چې خلګ عموماکري دداسې وښوپري کول هم جائزنه دي .دریم قسم خودرووابنه دي په دي کې صرف اذخر نومی وابنه پري کول جائزدي له دي څخه ماسوا جائزنه دي ،دپري کولوپه صورت کې جزاء واجبیږي .

(۱۸۳)یعنی دحرم په وښوکې څرول یاپریکول جائزنه دي ماسواله اذخرنومې وابنه څخه چې په حرم کې دننه دهغوپري کول جائزدي .اذخردحرم دیوخاص قسم خوشبوئي لرونکې وابنه نوم دی ،ولی دچې نبی کریم ﷺ ارشادمبارک دی چې ﴿لا يختلى خلاها ولا يعضد شوكها ﴾(دحرم تازه وابنه دي نه پري کیږي اونه دي څوڅان پري کیږي )پردي حضرت ابن عباس ﷺ وفرمایل﴿ الاالاذخرفانه لرعی دوابناوقبورنافقال

الاالاذخر﴾(يارسول الله ﷺ ماسواله اذخرڅخه چې دازموږدڅارويو اوقبرونودپاره دي ،نبی کریم ﷺ وفرمايل سمه ده ماسواله اذخرڅخه ).له دي حديث څخه دڅرولوممانعت هم ثابتيږي ولی چې دڅاروی په خوله اوغابنونوسره پري كول داسې دی لکه په اربوسره ريبل نوكله چې په اربوسره ريبل ممنوع دي نوڅرول هم ممنوع دي.

ف:امام ابويوسف رحمه الله فرمايي چې دحرم په وښوكې څرول دضرورت په وجه سره جائزدي خاص كردحج په موقع باندي دسورليودڅرولوضرورت ډيردی له باهرڅخه په وښوراوړلوكې حرج دی .امام ابويوسف رحمه الله ته ځواب وركړل شوی دی چې څاريوته له حل څخه وابنه راوړل ممكن دي چې په هغوسره ضرورت پوره كيږي ،په دي كې بې شكه چې حرج شته مگرحرج په هغه ځای كې معتبردی چيرته چې نص نه وي واردشوی دلته خودممانعت په باره كې نص واردشوی دی .ليكن دعلامه شامي رحمه الله له تحقيق څخه معلوميږي چې دامام ابويوسف رحمه الله په قول باندي دضرورت په بناء باندي دجوازفتوی وركول په كاردی ولی چې څاريوته دحرم دوښوپه وركولوكې داذخرپه نسبت ضرورت ډيردی په دي وجه چې حرم ته ترټولو قريبه علاقه له حرم څخه ترڅلورميله هم په ډيره فاصله كې ده نوكه خلك په ورځ كې يوځل ولاړشي اوراشي نوورځ ختميږي قال وجوزه ابويوسف رحمه الله للضرورة فان منع الدواب عنه متعذروتمامه فی الهداية ونقل بعض المحشين عن البرهان تائيدقوله بماحاصله ان الأحتياج للرعی فوق الاحتياج للاذخر واقرب حدالحرام اربعة اميال ففی خروج الرعاة اليه لم عودهم قدلايبقی من النهار وقت تشبع فيه الدواب ولی قوله ﷺ لايختلی خلاها ولايعضدشوكها وسكوته عن نفی الرعی اشارة لجوازه والابينه ولامساواة بينهماليلحق به دلالة الخ (ردالمحتار:۲/۲۳۷)

(۱۸۴)وَكُلُّ شَيْءٍ عَلَى الْمُفْرِدِ بِهِ دَمٌ فَعَلَى الْقَارِنِ دَمَانِ (۱۸۵)إِلَّا أَنْ يَتَجَاوَزَ الْمِيقَاتَ غَيْرَ مُحْرِمٍ (۱۸۶)وَلَوْ قَتَلَ مُحْرِمَانِ صَيْدًا تَعَدَّدَ الْجَزَاءُ (۱۸۷)وَلَوْ حَلَالَانِ لَا (۱۸۸)وَيَبْطُلُ بَيْعُ الْمُحْرِمِ صَيْدًا وَشِرَاؤُهُ (۱۸۹)وَمَنْ أَخْرَجَ ظَبْيَةَ الْحَرَمِ فَوَلَدَتْ وَمَاتَا ضَمِنَهُمَا (۱۹۰)وَإِنْ أَدَّى جَزَاءَهُ فَوَلَدَتْ لَا يَضْمَنُ الْوَلَدَ

**ترجمه** :اوهرهغه شی دكوم په وجه سره چې پرمفرديودم دي پرقارن به دوه دمه وي ،مگرداچې تيرشي له ميقات څخه بلااحرامه ،اوكه قتل كړدومحرمانوښكارلره نومتعدده به وي جزاء ،اوكه دووحلالو كسانو ښكارقتل كړنوجزابه متعدده نه وي ،اوباطله ده دمحرم خرڅول ښكارلره اودهغه اخيستل، اوچا چې راويستله دحرم هوسۍ بيادهغې بچی پيداشو او دواړه مړه شول نوضامن به وي ددواړو ،اوكه يې دهوسۍ جزاء اداء كړه بيادهغې بچی پيداشونوضامن به نه وی دبچې.

**تشريح** :(۱۸۴)يعنی دكوموجناياتوپه بدله كې چې په حج افرادكونكي باندي يودم ياپوه صدقه ده دهغو جناياتو ارتكاب كه حج قران كونكی وكړي نوپرده به دوه دمه او دوه صدقې وي ځكه چې قارن په دوواحرامونو سره محرم دی يو دحج احرام اوبل دعمري احرام ،نوپه دوواحرامونودجنايت دكولو وجه سره به جزاء گاني هم دوي وي.

ف:دحكم دهغه متمتع هم دی كوم چې له ځان سره هدی هم بيولې وي ولی چې هغه هم په دوواحرامونو سره محرم دی .البته دحج له واجباتوڅخه دكوم واجب په ترك كولوسره يادحرم دوښووغيره دپري كولوپه

صورت کې دوه دمه نه واجبيږي ولې چې دوه دمه دجنايت على الاحرام په صورت کې واجبيږي او دا جنايت على الاحرام نه دی.

(۱۸۵)قوله الاان يجاوالميقات غيرمحرم اى الاان يجاوالقارن الميقات حال كونه غيرمحرم فانه حينئذيجب عليه دم واحد،يعني يوصورت داسې دی په کوم کې چې پرقارن باندې هم يودم دی هغه داده چې له ميقات څخه بغيراحرام تيرشي اوپه حل کې دحج اوعمرې دواړواحرام وتړي نوپرده يودم واجب دی ولې چې په دې وخت کې دده پرذمه دکعبة الله دتعظيم لپاره يواحرام لازم دی نوله ميقات څخه دتيريدلوپروخت دی قارن نه دی نو داحرام دتاخيرپه وجه سره پرده يودم واجبيږي.

ف:دامام زفر رحمه الله په نزدپه دې صورت کې هم پرده دوه دمه واجب دي ولې چې دده دوه احرامه موخرکړي دي لهذاپه نورومحظوراتوپرقياسولوسره دهراحرام لپاره به يودم لازم وي .امام زفر رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې له ميقات څخه دتيريدلوپروخت يواحرام لازم دی نه دوه لهذادم به هم يوواجب وي.

(۱۸۶)که دوومحرمانوپه ګډه سره کوم ښکارپه حرم ياحل کې قتل کړنوپرهريوه باندې دکامل ښکارجزاء لازمه ده په دې وجه سره چې په دوئ دواړوکې هريومحرم دی اوهريوه په کامل احرام باندې جنايت کړی دی .همداراز په دوئ دواړوکې هريوه په قتل صيدکې په شرکت کولوسره دداسې جنايت ارتکاب کړی دی کوم چې دښکارله ورښودلواودښکارپه باره کې له دلالت کولوڅخه لوی دی لهذاپردواړوبه کامله جزاء وي.

(۱۸۷)قوله ولوحلالان لااى لواشترک حلالان فى قتل صيدلايتعددالجزاء ،يعني که دوو حلالو کسانوپه ګډه سره په حرم کې ښکارقتل کړنوپردواړوباندې يوه صرف يوه جزاء ده په دې وجه چې ضمان دلته صرف دحرمت حرم په وجه سره دی ولې چې په دې صورت کې خواحرام نشته اوحرم يودی لهذا اجزاء به هم يوه وي.

(۱۸۸)محرم که ښکارخرڅ کړيايې واخيستی نودده دابيع باطله ده ولې چې محرم که ژوندی ښکارخرڅوي نودمأمون اومحفوظ ښکارته تعرض کول دي کوم چې منهى عنه ده په دې وجه جائزنه دی ،اوکه له قتل کولوڅخه وروسته يې خرڅوي نودادمرداربيع ده ولې چې دمحرم په ذبح کولوسره ښکارمرداريږي په دې وجه جائزنه دی ،همداراز محرم دښکار کولوپه وجه سره دښکارمالک نه ګرځي نوداخيستلواوخرڅولوپه وجه سره هم مالک نشي جوړيدای اودغيرمملوک بيع باطله ده .مصنف رحمه الله مطلق ذکرکړي ده چې دمحرم بيع باطله ده له کوم څخه چې همدا ثابتيږي چې دمحرم خرڅول باطل دي که څه هم مشتري حلال وي اودمحرم اخيستل باطل دي که څه هم بائع حلال وي.

(۱۸۹)که چاله حرم څخه هوسۍ دباندې راويستله خواکه رايستلوالامحرم وي اوکه غيرمحرم وي ،له حرم څخه دباندې ددې هوسۍ بچی پيداشوبياهوسۍ اوددې بچی دواړه مړه شول نوپه رايستونکې باندې ددواړوجزاء واجب ده ولې چې ښکارله حرم څخه درايستلووروسته هم شرعاًدامن مستحق دی په همدې وجه خوده لره دده دامن ځای ته رسول واجب دی اوداصفت شرعيه يعني دامن مستحق والی

دبېيانوطرف ته هم سرايت كوي لكه چې د نوروصفاتو قاره مثلاحريت، كتابت وغيره حكم دى لهذادتولوجزاء واجبه ده .

(۱۹۰)هوكه دهوسۍ رايستونكي دهوسۍ جزاء اداء كړه بيادي بچى پيداشونوپردې دبچي جزاء واجبه نه ده ولى چې دهوسۍ دجزاء په اداء كولوسره اوس هغه دامن مستحقه نه شوه پاتې ولى چې دهوسۍ بدل فقراؤته رسيدل داسې ده لكه دهوسۍ حرم ته رسيدل ،نوله دې سره متصل بچى به هم دامن مستحق نه وي .همداشان كه له كفاره وركولوڅخه وړاندې ددې په بدن ياقيمت كې زيادت وشوبياهلاكه شوه نوبه ددې اضافي ضمان هم وركوي اوكه له كفاره اداء كولوڅخه وروسته ددې په بدن ياقيمت كې اضافه وشوه نومحرم به ددې اضافې ضامن نه وي .

## بَابُ مُجَاوَزَةُ الْمِيقَاتِ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ

### داباب له ميقات څخه دبلااحرامه تيريدلوپه بيان كې دى

داحرام په وجه سره چې كوم امورجنايت ګڼل كيدل دهغوله بيان څخه چې فارغ شونومصنف رحمه الله د داسې جناياتوبيان شروع كړكوم چې بغيرله احرام څخه وي نوپه دواړوكې دجنايت ترحدپورې مناسبت شته .البته څرنګه چې په دواړوكې نسبت تقابل دى په دې وجه يې داقسم په مستقل باب كې ذكركړ، بيادباب جنايات دتقديم وجه داده چې هغه بعدالاحرام جنايت دى اوباب مجاوزة الميقات قبل تراحرام جنايت دى اوپه باب الحج كې دمطلق اسم جنايت اطلاق پرهغو جناياتوكيږي كوم چې له احرام څخه وروسته وي لهذكامل جنايت بعدالاحرام والادى فقدم ذاک على هذالهذا.

(۱۹۱)من جاوز الميقات غير محرم ثم عاد محرما ملبيا او جاوز ثم أحرم بعمرة ثم أفسدو قضى بطل الدم (۱۹۲)فلو دخل الكوفي البستان لحاجة له دخول مكة بغير إحرام ووقته البستان (۱۹۳)ومن دخل مكة بغير إحرام وجب عليه أحد النسكين ثم حج عما عليه في عامه ذلك صح عن دخوله مكة بلا إحرام (۱۹۴)لا إن تحولت السنة لا

**ترجمه** :كوم كس چې تيرشو له ميقات څخه بلااحرامه بيابيرته راوګرځيدواحرام يې وتاړه په تلبيه ويلوسره ياله ميقات څخه تيرشوبيايې احرام وتاړه دعمرې بيايې هغه فاسده كړه اوقضاء يې راوړه نودم ساقطيږي ،اوكه كوفى كس بستان ته داخل شودكوم حاجت دپاره نودده لپاره جائزده مكې مكرمې ته داخليدل بلااحرامه اوددده ميقات هغه باغ دى ،اوكوم كس چې داخل شومكې ته بلااحرامه نوواجب ده پرده له دوعبادتونو څخه يوبيادده حج وكړكوم چې دده پرذمه واجب وو په همدې كال نوداصحيح دى دهغه په عوض كې كوم چې بلااحرامه مكې ته دداخليدلوپه وجه سره لازم شوى وو ،اوكه كال وګرځيدونوصحيح نه ده .

**تشريح** :(۱۹۱) كه كوم خارجي كس بغيرله احرام ترلوله ميقات څخه تيرشونوپرده دترک احرام په وجه سره دم لازم دي ليكن كه ده احرام وتړه اوپه تلبيه ويلوسره بيرته دميقات طرف ته راوګرځيدوخواه كه دحج احرام وي اوكه دعمرې احرام وي ،يابغيرله احرام ترلوله ميقات څخه تيرشواوبيايې دعمرې احرام وتاړه له دې وروسته يې عمره فاسده كړه اوله نوي سره يې له ميقات څخه احرام وتاړه دعمرې قضاء يې راوړه نوله ده

ځخه په دي دواړوصورتونوکي هغه دم ساقطيږي کوم دم چي بلااحرامه له ميقات ځخه دتيريدلوپه وجه سره پرده لازم شوی وو ولی کوم ځه چي له ده ځخه فوت شوی وو ده دهغه په خپل وخت کي تدارک وکړ.

ف: البته دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزدبيرته په راګرځيدلوکي تلبيه ويل شرط دي که يي تلبيه ونه ويله نودم نه ساقطيږي. حال داچي دصاحبينوپه نزددم ساقطيږي که يي تلبيه وويله اوکه يي ونه ويله .صاحبين فرمايي چي له ميقات ځخه احرام تړل په خپل وخت کي دتقصيرتلافی ده .امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي چي داتلافی له تلبيي ځخه بغيرکامله نه ده .دامام زفر رحمه الله په نزدددي تقصيرتدارک اوس ممکن نه دی ولی چي دميقات طرف ته په بيرته راګرځيدلوسره جنايت نه رفع کيږي لهذادم په هرصورت لازميږي .اوکه داسي کس نه استلام حجرځخه وروسته واپس شونوبالاتفاق دده له ذمي ځخه دم نه ساقطيږي .دامام ابو حنيفه رحمه الله قول راجح دی کماقال الشيخ عبدالحکيم الشهيد: واختارجميع اهل العلم قول الامام ابی حنيفة وان کان ظاهر الدليل يرجح قولهما واعترض ابن الهمام في الفتح علی دليله لکن اجاب عنه المشائخ النصر وامذهب الامام رحمه الله (هامش الهداية: ٢/٢٦٨)

(١٩٢)که کوم کوفی کس (مراد افاقی دی چي له هره ځايه ځخه راغلی وي )دخپل کوم ضرورت په وجه سره بستان بنوعامر(مکي مکرمي ته قريب دميقات دننه اوله حرم ځخه دباندي ديوځای نوم دی کوم چي له مکي مکرمي ځخه دشل ميله په فاصله پروت دی ،کوم ته چي نن صبانخله محمودويل کيږي)ته بغيرله احرام ځخه داخل شونوپرده هيڅ جرم نشته اوس که دي له بستان بنوعامرځخه مکي مکرمي ته داخليدل وغواړي نوده ته بغيرله احرام ځخه مکي مکرمي ته دداخليدلواجازه شته ولی چي دی اوس دبستان يعنی حل والاوځخه دی ،اودبستان والاوته جائزدی چي بغيرله احرامه مکي مکرمي ته داخل شي نودده لپاره به هم بلااحرامه دخول جائزوي .اوکه داکس اوس په احرام تړلوسره مکي مکرمي ته داخليدل وغواړي نودده لپاره ميقات همدابستان (مرادټول حل دی )دی ولی کوم خلک چي دميقاتونودننه اوسيږي دهغوئ لپاره ميقات حل دی .

ف: دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزدځوک چي هم بستان ته داخل شي هغه اوس دهغه ځای شمارل کيږي خواه که دپنځه لسوورځوداقامت نيت وکړي اوکه يي ونه کړي ،حال داچي له امام ابويوسف رحمه الله ځخه مروی ده چي کوم شخص چي په بستان کي له پنځه لسوورځوځخه دکم اقامت نيت وکړي هغه دبستان له اوسيدونکوځخه نه شمارل کيږي لهذاده لره بغيرله احرامه مکي مکرمي ته داخليدل جائزنه دي ،دامام صاحب قول راجح دی کمافی الدر المختار: دخل کوفی ای آفاقی البستان ای مکانامن الحل داخل الميقات لحاجته قصدهاولوعندالمجاوزة علی مامرونية مدة الاقامة ليست بشرط علی المذهب (الدر المختار علی هامش الشامية: ٢/٢٣٦)

(١٩٣)که کوم کس مکي مکرمي ته بغيرله احرام ځخه داخل شونوپرده حج ياعمره لازمه شوه بيا دی په همدي کال روان شواوله ميقات ځخه يي دحج اسلام ياعمري احرام وتاړه نوبغيرله احرامه مکي مکرمي ته دداخليدلوپه وجه چي کوم حج ياعمره پرده لازمه شوي وه داحج ياعمره دهغه لپاره کفايت کوي اوس دهغه دمستقل اداء کولوضرورت نشته ولی چي پرده په احرام سره دکعبة الله تعظيم واجب وو خواکه په کومه طريقه سره هم وي اوس هغه تعظيم په وخت کي دننه (يعنی په همدي کال )دحج ياعمري په کولوسره حاصل شولهذادهغه لپاره دمستقل حج ياعمري کولوضرورت نشته .

(۱۹۴)قوله فان تحولت السنة لاای ان تحولت السنة هذه ثم احرم بالحج من الميقات لاينوب عما وجب عليه بدخول مكة بلااحرام. يعنى په كوم كال چې دى بغيرله احرام څخه مكې مكرمې ته داخل شوى وو هغه كال تيرشو اوس دى له ميقات څخه احرام تړي حج ياعمره اداء كوي نو دا هغه حج ياعمرې څخه كفايت نه كوي كوم چې مكې مكرمې ته دبغيرله احرام څخه دداخليدلو په وجه سره پرده لازم شوى وو ولې چې هغه اوس دده پرذمه دين مقصود دى دهغه دپاره مقصود دا احرام تړل ضروري دى.

## باب إضافة الإحرام إلى الإحرام

### داباب له يوه احرام سره دبل احرام ديوځاى كولو په بيان كې دى

له يوه احرام سره دبل احرام يوځاى كول څرنګه چې دمكى او په مواقيتو كې داوسيدونكو په حق كې جنايت دى او دآفاقى په حق كې ماسوا له يوه صورت څخه جنايت نه دى او هغه صورت دادى چې دعمرې احرام دحج له احرام سره يوځاى كړي دا صورت دآفاقى په حق كې هم جنايت دى له دې څخه ماسوا اضافت احرام الى الاحرام دآفاقى په حق كې جنايت نه دى نو ثابته شوه چې احرام له احرام سره يوځاى كول په يوه اعتبارسره جنايت دى لهذا له باب الجنايات سره متصل دده احكام بيانول مناسب دي او په بل اعتبارسره جنايت نه دى په دې جهې دده لپاره دمستقل باب عنوان كښيښود.

(۱۹۵)مَكِّيٌّ طَافَ شَوْطًا لِعُمْرَتِهِ فَأَحْرَمَ بِحَجٍّ رَفَضَهُ وَعَلَيْهِ حَجٌّ وَعُمْرَةٌ وَدَمٌ لِرَفْضِهِ(۱۹۶)فلو مضى عليهما صح وعليه دم(۱۹۷)وَمَنْ أَحْرَمَ بِحَجٍّ ثُمَّ بِآخَرَ يَوْمَ النَّحْرِ فَإِنْ حَلَقَ فِي الْأَوَّلِ لَزِمَهُ الْآخَرُ وَلَا دَمَ(۱۹۸)وَإِلَّا لَزِمَهُ وَعَلَيْهِ دَمٌ قَصَّرَ أَوْ لَا

**ترجمه**:مكى كس يو شوط طواف وكړ دعمرې دپاره بيايې احرام وتاړه دحج نو حج دې پريږدي او پرده حج او عمره او يو دم دى دحج دپريښودلو په وجه،نو كه دده دواړو افعال يې وكړل نو صحيح دى او پرده دم لازم دى،او كه چا احرام وتاړه دحج بيايې دبل حج احرام وتاړه داخترپه ورځ نو كه يې حلق وكړ په اول كې نو پرده دوهم لازميږي او پرده دم نشته،كه نه نو حج لازميږي او پرده دم هم لازميږي خوا قصرو كړي او كه يې نه وكړي.

**تشريح**:(۱۹۵)يعنى كه مكى دعمرې احرام وتاړه او دعمرې لپاره يې يو شوط طواف وكړ بيايې دحج احرام وتاړه يعنى دحج داحرام نيت يې وكړ نو پرده واجب ده چې حج پريږدي ولې چې دمكې لپاره دحج او عمرې جمع كول مشروع نه دي.او دحج دپريښودلو په وجه سره پرده يوه قرباني واجبيږي او پرده دحج او عمرې قضاء واجب ده.بايد واضحه وي چې حج خود شروع كولو په وجه سره واجب شوى وو په دې وجه به دهغه قضاء كوي مګر دعمرې قضاء نشته بلكه له هر قضائى حج سره يوه عمره وي په دې وجه چې دحج قضاء راوړي، عمره به هم اداء كوي.

**ف**:بيا دامام صاحب په نزد دحج پريښودل بنه دى ولې چې له عمرې سره ديوه شوط طواف اداء متصله شوه اوس دهغې په پريښودلو سره دعمرې ماتول لازميږي حال دا چې دحج په پريښودلو سره ماتول نشته بلكه امتناع عن الاداء ده ولې چې له حج سره اداء نه ده متصله شوي نو دكوم عمل له ماتولو څخه امتناع عن العمل اولى ده.صاحبين فرمايي بنه دا ده چې عمره پريږدي ولې چې دعمرې رتبه له حج څخه كمه ده.او كه يې

دعمري دپاره يوشوط طواف هم نه وي كړى نودي كس لره بلاخلافه حكم دادى چې عمره دي پريږدي .دامام صاحب قول راجح دى كمافى الشامية: وله ان احرامها تأكد باداء شئ من اعمالها ورفض غير المتأكد ايسر ولان فى رفضها ابطال العمل وفى رفضه امتناع عنه (ردالمحتار: ۲/۲۴۸)

(۱۹۶)كه په مذكوره بالاصورت كې مكى حج پرې نه شود بلكه ددواړو افعال يې اداء كړل نودواړه اداء شول ولى ده چې ددواړو افعال په كوم ډول پرځان لازم كړي وو په هغه ډول سره يې اداء كړل . هواوس پرده يودم لازم دى ولى چې ده دمنهى عنه فعل ارتكاب وكړنودادم دهغه دتلافى لپاره دي .

(۱۹۷)كه چادحج احرام وتاړه بيايې په لسم دذى الحجه دراتلونكې كال لپاره دبل حج احرام وتاړه نوكه له اول حج څخه دوتلولپاره ده حلق كړى وي بيايې ددوهم كال لپاره دحج احرام وتاړه نوپرده دوهم حج لازميږي اودادوهم حج به راتلونكى كال اداء كوى ترهغه وخته به محرم وى اوپرده دم وغيره هيڅ واجب نه دي ولى چې ده دوه احرامه نه دي جمع كړي په دي وجه چې په حلق سره هغه له اول احرام څخه وتلى وو .

(۱۹۸)قوله والالزمه وعليه دم قصر اولا اى وان لم يحلق للحج الاول واحرم للثانى لزمه وعليه دم قصر اولم يقصر،يعنى كه له اول حج څخه دوتلولپاره ده حلق نه وو كړى نوپرده دوهم حج لازميږي اوپرده دم هم لازميږي خواله اول حج څخه وروسته حلق (قصر)وكړي يايې نه وكړي ولى چې كه حلق وكړي نودا په دوهم احرام جنايت دى په دي وجه سره دم لازم دي اوكه حلق نه وكړى نودااول حج دحلق له خپل وخت څخه موخركول دى دكوم په وجه سره چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددم لازميږي. دصاحبينو په نزدپه اول صورت كې خودم لازميږي ولى چې ده ددوهم حج پراحرام باندي جنايت وكړ،اوپه دوهم صورت كې دم نشته ولى چې ددوئ په نزدپه تاخيرعمل سره په محرم هيڅ شى نه واجبيږي .

**ف**:دامام ابوحنيفه رحمه الله قو ل راجح دى لمافى الدرالمختار: ومن احرم بحج ثم احرم يوم النحر بآخر فان كان قدحلق للاول لزمه الآخر فى العام القابل بلادم لانتهاء الاول والا يحلق للاول فيلزمه الآخر مع دم قصر اولا اى اذالم يحلق للاول ثم احرم بالثانى لزمه دم سواء حلق عقب الاحرام الثانى اولا بل اخره حتى حج فى العام القابل وهذاعنده (الدرالمختار مع الشامية: ۲/۲۵۰)

(۱۹۹)وَمَنْ فَرَغَ مِن عُمْرَتِهِ إِلَّا التَّقْصِيرَ فَأَحْرَمَ بِأُخْرَى لَزِمَهُ دَمٌ (۲۰۰)وَمَنْ أَحْرَمَ بِحَجٍّ ثُمَّ بِعُمْرَةٍ ثُمَّ وَقَفَ بِعَرَفَةَ فَقَدْ رَفَضَ عُمْرَتَهُ (۲۰۱)وَإِنْ تَوَجَّهَ إِلَيْهَا لَا (۲۰۲)فَلَوْ طَافَ لِلْحَجِّ ثُمَّ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ وَمَضَى عَلَيْهِمَا يَجِبُ دَمٌ وَنُدِبَ رَفْضُهَا

**توجمه** :اوكوم كس چې فارغ شوله عمري ماسواله قصر څخه بيا ده احرام وتاړه دبلې عمري نوپرده لازم دى دم ،اوچاكه احرام وتاړه دحج بيادعمرى بيايې وقوف عرفات وكړنوده پريښودله خپله عمره ،اوكه متوجه شوصرف دعرفات طرف ته نونه ،نوكه يې طواف وكړدحج لپاره بيايې احرام وتاړه دعمري ،اوددواړو افعال يې اداء كړل نودم واجبيږي اومستحب دى ده لره ددي عمري پريښودل .

**تشريح** :(۱۹۹)كه څوک له سرخرييلويا كمولو څخه ماسوادعمري له نوروافعالو څخه فارغ شويا ده دبلې عمري احرام وتاړه نوپرده دم واجب دي ولى چې ده دبلې عمري احرام له وخت څخه په وړاندي تړلوسره داولنى عمرى له احرام سره هغه هم جمع كړاوجمع بين الاحرامين مكروه تحريمي ده نوپرده دم لازميږي اودادم ددي نقصان تلافى اوجبيره ده .

(۲۰۰)که چادحج احرام وتاړه پیاده دحج دافعالوله اداء کولوڅخه وړاندي دعمري احرام وتاړه بیایې وقوف عرفات وکړ دعمري افعال یې بالکل اداء نه کړل نوداکس دعمري پرېښودونکی شمارل کیږي ولی چې له وقوف عرفه څخه وروسته پرده دعمري اداء کول متعذردي په دي جه چې له وقوف عرفه وروسته دعمري افعال اداء کول ګویاعمره په حج بناء کول دي حال داچې عمره په حج بناء کول مشروع نه دي .

(۲۰۱)قوله وان توجه الیهالاای لایصیرتارکاحتی یقف بها،یعني که داکس صرف دعرفات طرف ته متوجه شونوصرف دعرفات طرف ته په متوجه کیدلوسره تارک عمره نه شمارل کیږي په خلاف دهغه کس کوم چې دظهرلمونځ اداء کړي بیادجمعې طرف ته متوجه شي چې په متوجه کیدلوسره دده دظهرلمونځ ترک کیږي .په دي دوومسئلوکې وجه دفرق داده چې کله چې ظهراداء کړدجمعې طرف ته متوجه شونوده ته دجمعې طرف دمتوجه کیدلوخطاب یعنی ﴿فاسعواالی ذکرالله﴾ تراوسه موجوددی حال داچې دعمري په پرېښودلوسره اودعرفات طرف ته دمتوجه کیدلوپه صورت کې دعرفات طرف ته دمتوجه کیدلوحکم نشته بلکه دی منع کړل شوی دی، حکم دادی چې اول عمره اداء کړي بیادي عرفات ته ولاړشي .

(۲۰۲)که چادحج طواف قدوم وکړبیایې دعمري احرام وتاړه اودواړه یې په دي ډول سره اداء کړل چې افعال عمره یې په افعال حج باندي مقدم کړل نوداصحیح ده اوددواړودجمع کولوپه وجه پرده یودم لازم دی اودادم دعلامه فخرالاسلام په نزدکفاره اودنقصان دتلافی لپاره دی دم شکرنه دی صحیح همداده په هدایه کې دهمدي تصحیح کړي ده ،حال داچې دشمس الائمه په نزدځرنګه چې داحج قران دی لهذادادم شکردي اوداقول راجح هم دی (کذافی الشامیة :۲۵۱/۲)لیکن په مذکوره بالاصورت کې دعمري ماتول مستحب دی ولی چې دحج اودعمري ترمنځ من وجه فعلی ترتیب فوت شوولی چې ده دعمري له طواف څخه وړاندي طواف قدوم وکو .لیکن عمره ماتول لازم نه دی ولی ده چې دحج کوم عمل اداء کړی دی هغه رکن نه دی ترڅودعمري ترتب پرحج وګڼل شي .اوکله چې یې عمره ماته کړه نودهغې قضاء دي راوړي ولی چې دعمري شروع کول صحیح شوی وو اوپرده دعمري دماتولوپه وجه سره یودم واجب دی.

(۲۰۳)وَاِن أَهَلَّ بِعُمرَةٍ يومَ النَّحرِ لَزِمَتهُ وَلَزِمَهُ الرَّفضُ وَالدَّمُ وَالقَضَاءُ فَاِن مَضَى عليها صَحَّ وَيَجِبُ دَمٌ (۲۰۴)وَمَن فَاتَهُ الحَجُّ فَأَحرَمَ بِعُمرَةٍ او حَجَّةٍ رَفَضَهَا

**ترجمه** :اوکه یې احرام وتاړه دعمري داخترپه ورځ نوهغه لازمیږي اوپرده لازمه ده دهغې پرېښودل اودم اوقضاء لازمیږي اوکه ده اداء کړل دهغې افعال نوصحیح ده اودم واجبیږي ،اودچافوت شي حج بیادی احرام وتړي دعمري یاحج نوهغه دي پرېږدي .

**تشریح** :(۲۰۳)که چاپه یوم نحرکې دعمري احرام وتاړه نوپرده عمره لازمه شوه ولی چې دعمري شروع کول صحیح دي اوعمل په شروع سره لازمیږي .البته ددي عمري ماتول لازم دي ترڅوله ګناه څخه خلا- شي ولی چې په دي ورځوکې داعمال حج دتعظیم په وجه سره عمره مکروه ده .اوس دده پرذمه یودم لازمیږي ولی چې ده له وخت څخه وړاندي دعمري له احرام څخه تحلل اختیارکړ.اودعمري دپرېښودلو په وجه سره دهغې قضاء لازمه ده ولی چې په شروع کولوسره عمره لازمه شوي وه کومه چې ده ماته کړي وه .اوکه ده عمره نه پرېښوده بلکه پوره یې کړه نوداصحیح ده ولی چې بنفسه په عمره کې څه کراهت نشته بلکه کراهت

لغیره دی اوهغه غیردادی چې په دې ایاموکې ده لره دحج باقي اعمال اداء کول دي په دي وجه سره دافعال حج لپاره وخت فارغ پرېښودل تعظیما واجب دی .البته دحج اوعمري دواړودجمع کولوپه وجه سره پرده یودم لازم دی .

(۲۰۴)که دچاحج فوت شویعني وقوف عرفات فوت شو .بیاده دعمري یاحج احرام وتاړه نوداکس دي دادوهم ترک کړي خواه که عمره وي اوکه حج وي ولی چې دچاحج فوت شې هغه دعمري دافعالوپه اداء کولوسره حلالیږي بغیرله دي چې دده احرام منقلب شې اودعمري احرام وګرځي یادبل حج احرام وګرځي لهذا داعمالوپه اعتبارسره داکس ددووعمرو یادووحجونوجمع کونکی شواو داجائزنه دی په دي وجه سره دي دادوهم احرام ترک کړي .

## بَابُ الْإِحْصَارِ

داباب داحصارپه بیان کې دی

احصارپه لغت کې بندولوته ویل کیږي اوشرعاً منع المحرم عن اداء الرکنین (یعنی محرم له وقوف عرفات اوطواف زیارت څخه بندولو)ته ویل کیږي .نومحصرهغه کس دی چې دحج یاعمري یادواړواحرام وتړي بیادمرض یادښمن وغیره په وجه سره حج ونه کړای شي .دمحصرحکم دادی چې دي دبیت الله ته دتلونکی کوم کس په لاس پسه یادپسه قیمت حرم ته ولیږي هغه به یې هلته ذبح کړي نومحرم حلالیږي .

څرنګه چې تحلل بالاحصارهم یوقسم جنایت دی ولی چې داحصارپه وجه سره چې کوم دم لازمیږي له هغه څخه دجانی په شان محصرخورک نشي کولی په دي وجه له جنایاتوڅخه وروسته احصارذکرکړی دی .دجنایاتودتقدیم وجه داده چې جنایات اختیاري دي اواحصارضروري دی .

(۲۰۵)لِمَنْ أُحْصِرَ بِعَدُوٍّ أَوْ مَرَضٍ أَنْ يَبْعَثَ شَاةً تُذْبَحُ عَنْهُ وَيَتَحَلَّلَ (۲۰۶)وَلَوْ قَارِنًا بَعَثَ دَمَيْنِ (۲۰۷)وَيَتَوَقَّفُ بِالْحَرَمِ لَا بِيَوْمِ النَّحْرِ (۲۰۸)وَعَلَى الْمُحْصَرِ بِالْحَجِّ إِنْ تَحَلَّلَ حَجَّةٌ وَعُمْرَةٌ (۲۰۹)وَعَلَى الْمُعْتَمِرِ عُمْرَةٌ (۲۱۰)وَعَلَى الْقَارِنِ حَجَّةٌ وَعُمْرَتَانِ

**ترجمه** :جائزده دهغه کس لپاره کوم چې بندشوددښمن یاناروغي په وجه سره داچې ولیږدوي پسه کوم چې ذبح کړای شي دده له طرف څخه بیادی حلال شي ،اوکه هغه قارن وونودوه دمه دي ولیږدوي ،او دادم متعین دي په حرم سره نه چې داختر په ورځې سره ،اوله حج څخه دبندشوي کس په ذمه که هغه حلال شي یوحج اوعمره ده ،اوله عمري څخه دبندشوی کس پرذمه عمره ده ،اوپرقارن یوحج اودوه عمري دي .

**تشریح** :(۲۰۵)یعنی چاچې احرام وتاړه بیاخوف دښمن دی له حج څخه پاتې کوچنانچه دی حج ته نه ولاړی یامریض شودمرض په وجه سره نه ولاړی نوداسې کس لره دلته خپل ځان حلالول جائزدی .دکوم چې طریقه داده چې بیت الله ته دتلونکي کوم کس په لاس پسه یادپسه قیمت حرم شریف ته ولیږدوي ترڅوهغه په حرم کې داپسه حلال کړي کله چې هغه داپسه په حرم کې ذبح کړي په همدي وخت محصر (بندشوی کس )حلالیږي اوداحکم په دي وجه دی چې احرام ممتدنشي دکوم په وجه چې به دی به مشقت کې ولویږي .امام

صاحب فرمايي چې دبيونكې كس څخه دي ديوي متعيني ورځې وعده واخلي ترڅو هغه په هغه ورځ باندي ذبح وكړي بياچې كله هغه متعينه ورځ راورسيږي نو دمحصرلپاره به اوس ټول ممنوعات حلال شي .

ف:دطرفينوپه نزدپرمحصر حلق ياقصرلازم نه دى حال داچې دامام ابويوسف رحمه الله په نزددپــه له ذبح كولوڅخه وروسته پرده حلق لازم دى ولى چې محصركه څه هم له نورومناسكودحج څخه عاجزدى له حلق څخه خوعاجزنه دى ،همدارازنبى كريم ﷺ په حديبيه كې له محصوركيدلوڅخه وروسته صحابه كرامو ﷺ ته دحلق كولو حكم فرمايلې وو .امام ابويوسف رحمه الله ته ځواب وركړل شوى د ى چې حلق موقت بالحرم دى په حرم كې موږهم دحلق قائل يواونبى كريم ﷺ صحابه كرامو ﷺ ته هم ځكه امركړى وو چې دوئ په حديبيه كې وو اودحديبيه بعض حصه په حرم كې شامله ده .

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزداحصارصرف ددښمن په وجه سره راتلاى شي په مرض وغيره سره نشي كيداى ولى چې ايت مبارك﴿فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ﴾دنبى كريم ﷺ اوصحابه كرامو ﷺ په باره كې نازل شوى دى اوهغوئ ددښمن به وجه سره محصروو .امام شافعي رحمه الله ته ځواب وركړل شوى دى چې ايت احصاردمحصر بالمرض په باره كې نازل شوى دى ولى چې داحصارلفظ داهل لغت په نزددمرض په وجه سره دپاتي كيدلودپاره ويل كيږي اولفظ حصر ددښمن په وجه سره دپاتې كيدلودپاره ويل كيږي اوپه ايت شريف كې حصرنه دى بلكه داحصارلفظ دى .نودمرض په وجه سره محصر كيدل په ايت شريف سره ثابت دى اوددښمن په وجه محصركيدل دصلح حديبيه په واقعه سره ثابت دى .

(۲۰۶)ديوه پسه دليږلو حكم خومفردلره دى كه قارن حج ته له تللوڅخه بندكړاى شونوهغه ځرنگه چې په دواحرامونوسره محرم دى لهذاددي دواړواحرامونوڅخه دتللولپاره دوه پسونه يادهغوقيمت ليږل ضروري دى .نوكه قارن يوه هدى وليږل ترڅوصرف دحج له احرام څخه حلال شي نوله يوه څخه هم نه حلاليږي ولى چې له دواړواحرامونوڅخه په حالت واحده كې حلاليدل مشروع دي نوكه له يوه څخه حلال شي اوله بل څخه حلال نشي نوپه دي كې تغييرمشروع دى.

(۲۰۷)داقرباني په حرم پسې موقته ده په يوم نحرپسې موقته نه ده يعنى دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددم احصارله حرم څخه ماسواپه بل ځاى كې ذبح كول جائزنه ده ولى چې له زمان متعين (يعنى داخترورځ )اومكان متعين (يعنى كعبة الله )څخه ماسوادوينې تويولو قربت متعارف نه دى .البته دعيدله ورځې څخه وړاندي ذبح كول جائزده ولى چې داخترپه ورځ پسې په مخصوص كولوسره كله داخترورځ ليري وي نودمحصراحرام اوږديږي اودى په حرج كې مبتلاكيږي .دصاحبينوپه نزدداخترپه ورځ پسې موقت ده وړاندي جائزنه ده .

ف:دامام صاحب قول راجح د ى كمافي الفقه الاسلامي :وعلى الراى الاول وهو الراجح يكون زمان ذبح الهدى مطلق الوقت لايتوقت بيوم النحر سواء كان الاحصار عن الحج ام عن العمرة (الفقه الاسلامي وادلته:۳/۲۳۵۳)

ف:صاحبين رحمهما الله تعالى فرمايي چې په محصربالحج باندي دم احصارداخترپه ورځ ذبح كول لازم دي له دي څخه وړاندي جائزنه ده .صاحبين يې په دم قران اوتمتع باندي قياسوي .صاحبينوته ځواب وركړل شوى دى چې دادم جنايت دي ول چې له وخت څخه وړاندي حلاليدل جنايت دى اودجنايت دم په وخت پسې

مختص نه وي .البته دمحصربالعمرة په باره کې دائمه ثلاثه اتفاق دی چې په هروخت کې دم احصارذبح کولی شي داختوروځ متعينه نه ده ولی چې تحلل عن العمرة داخترپه ورځ پسې خاص نه دی .

(۲۰۸)يعنی محصربالحج که حلال شواوپه همدې کال يې حج اداء نه کړنو دده پرذمه په راتلونکې کال ددې حج قضاء لازمه ده اويوه عمره ده .دحج قضاء خودشروع فی الحج دصحيح والی په وجه سره واجب ده اوعمره په دې وجه واجب ده چې محصردحج دفوت کونکی په معنی کې دی اودحج په فوت کونکي باندې لازم ده چې عمره اداء کړي اوحلال شي بياپه راتلونکې کال کې حج وکړي نومحصر به هم عمراوحج اداء کوي .دامام شافعي رحمه الله په نزدکه نفلی حج وو نوپه محصرباندې قضاء نشته . داحنافوپه نزدځکه چې عمل په شروع کولوسره لازميږي لهذادنفلی حج په صورت کې هم قضاء لازمه ده.

(۲۰۹)په محصربالعمرة باندې قضاء لازمه ده ولی چې عمل په شروع کولوبياماتولوسره (که څه هم نفلی عمل وي )قضاء لازميږي .دامام شافعي اوامام مالک په نزدپه عمره کې احصارنشته ولی چې عمره په وخت پسې موقته نه ده چې داحصارپه وجه سره فوت شي .احناف وايي چې داحصاربالحج په صورت کې حلال والی په دې وجه سره مشروع دی ترڅوداامتداداحرام ضرردفع شي اودامتداداحرام ضرر داحصارعن العمره په صورت کې هم موجوديږي .

(۲۱۰)که قارن محصرشونوراتلونکی کال يوحج اودوه عمرې پرده لازمې دي .دحج اويوې عمرې وجه خوهغه ده کومه چې داحصاربالحج المفردپه بيان کې ذکرشوه اوعمره ثانی په دې وجه سره لازمه ده چې قارن له حج سره ديوې عمرې احرام هم تړلی وو نوداحصارپه وجه سره دهغې قضاء هم لازمه ده .

(۲۱۱)فَإِنْ بَعَثَ ثُمَّ زَالَ الْإِحْصَارُ وَقَدَرَ عَلَى الْهَدْيِ وَالْحَجِّ تَوَجَّهَ وَإِلَّا لَا (۲۱۲)وَلَا إِحْصَارَ بَعْدَ مَا وَقَفَ بِعَرَفَةَ (۲۱۳)وَمَنْ مُنِعَ بِمَكَّةَ عَنِ الرُّكْنَيْنِ فَهُوَ مُحْصَرٌ وَإِلَّا لَا

**ترجمه** :اوکه محصردم وليږدولې بيازائل شواحصاراودی قادرشوپرحج اودم دواړو مونډلوباندې نوروان دې شي کنه نونه دې ځي ،اواحصارنشته پرعرفات له دريدلوڅخه وروسته ،اوکوم کس چې بندکړای شوپه مکه مکرمه کې له دواړورکنونوڅخه نومحصردی که نه نو محصرنه دی.

**تشريح** :((۲۱۱)يعنی که محصردچاپه لاس هدی وليږدوله اوورته ويې ويل چې په فلانکی معينه ورځ يې ذبح کړه اوس له هدی ليږدولوڅخه وروسته دمحصراحصارختم شونوددې څلورقسمه جوړيږي . /نمبر۱. دومره وخت شته چې محصرحج اوهدی دواړه مونډی شي . /نمبر۲.دواړه نشي مونډای . /نمبر۳.صرف هدی مونډی شي حج نشي مونډای. /نمبر۴.صرف حج مونډی شي هدی نشي مونډی.

داولنی صورت حکم دادی چې محصرته له احرام څخه حلاليدل جائزنه دي بلکه ولاړدې شي اوحج دې وکړي ولی چې له حصول مقصودبالخلف (يعنی هدی )څخه وړاندې عجززائل شو .په دوهم صورت کې تلل عبث دي په دې وجه دې نه ځي. په دريم صورت کې هم دنه تللوحکم دی بلکه په هدی ذبح کولوسره دې تحلل حاصل کړي ولی چې له اصل څخه عاجزدی .دڅلورم صورت حکم دادی چې تلل اودحج اعمال اداء کول افضل دي مګراستحسانا تحلل بالذبح جائزدی ولی چې په دې ډول کولوسره مال له ضائع کيدلوڅخه

ساتل كيږي ولى چې مال هم دنفس په څير محترم دى .قوله والالاى وان لم يقدعلى ادراكهمااوادراك احدهمالايجب عليه التوجه.

(۲۱۲)يعنى كه چاوقوف عرفات وكړىياهغه له باقى مانده احكامو څخه منع كړاى شونوهغه ته محصرنه ويل كيږي ولى چې داحصارسبب دحج دفوت والى خوف دى حال داچې له وقوف عرفات څخه وروسته دحج دفوتيدلوخوف نه دي پاتې ولى چې دنبى كريم ﷺ ارشاددى .﴿من وقف بعرفة فقدتم حجه﴾ (چاچې وقوف عرفات وكودهغه حج پوره شو).

(۲۱۳)يعنى كوم كس چې په مكه مكرمه كې له اداء دركنينويعنى وقوف عرفات اوطواف زيارت څخه بندكړاى شونوداكس محصردى په دي وجه چې دى له اتمام حج څخه معذوردى .قوله والالاى ان لم يمنع عن الركنين فلايكون محصرا.يعنى كه له طواف زيارت اووقوف عرفات دواړوڅخه منع نه كړاى شوبلكه له دواړوڅخه ديوه په اداء كولوده ته قدرت حاصل شونوداكس محصرنه دى په دي وجه چې په وقوف عرفات دقدرت په صورت كې دده حج پوره كيږي لهذامحصرنه دى اوپه طواف زيارت دقدرت په صورت كې په طواف كولوسره حلاليږي دهدى دليږدولوضرورت نشته په دي وجه محصرنه دى .

## بَابُ الْفَوَاتِ

داباب دحج دفوت كيدلوپه بيان كې دى

فوات په لغت كې عدم الشئ بعدوجوده ته ويل كيږي اوشرعاًدحج فوات دادى چې له چاڅخه وقوف عرفات فوت شي. فوات اواحصاردواړه له عوارضوڅخه دي په دي وجه په دواړوكې مناسبت موجود دى بياځرنګه چې احصارنبى كريم ﷺ ته پيښ شوى وو په دي وجه يې احصارله فوات څخه وړاندي ذكركړ،همداراز احصارداحرام بلااداء اركان نوم دى اوفوات داحرام اوځينې اركانوداداء كولونوم دى نواحصاربمنزله مفرددى اوفوات بمنزله مركب دى اومفردمقدم وي له مركب څخه په دي وجه يې احصارله فوات څخه مقدم كړ.

(۲۱۴)من فاته الحج بفوت الوقوف بعرفة فليحلل بعمرة وعليه الحج من قابل بلادم ولافوت لعمرة(۲۱۵)وهي طواف وسعي وتصح في السنة وتكره يوم عرفة ويوم النحروأيام التشريق(۲۱۶)وهي سنة

**ترجمه** :دچاحج چې فوت شي دوقوف عرفات دفوتيدلوپه وجه سره نودى دي خپل ځان حلال كړي په عمره كولوسره اودده پرذمه حج دى راتلونكى كال بغيرله دم څخه اوفوت والى نشته دعمري لپاره . اوهغه طواف دى اوسعى دى اوصحيح ده په ټول كال كې اومكروه ده دعرفات اواخترپه ورځ اوپه ايام تشريق كې اوهغه سنت ده .

**تشريح** :(۲۱۴)يعنى چاچې دحج احرام وتړى (خواه كه حج فرض وي يانفل وي كه صحيح وي كه فاسدوي )نوكه دنهم ذى الحجه له زوال څخه ديوم نحرترطلوع فجرپوري يې وقوف عرفه ونه كړاى شونودي كس حج فوت شوپه دي وجه چې وقوف عرفه ركن دى اودكوم عمل دركن په فوت كيدلوسره عمل فوتيږي .اوس دده لپاره داحكم دى چې عمره دي وكړي اوځان دي حلال كړي يعنى په همدي احرام دي دبيت الله طواف

اوسعی بین الصفا والمروه وکړي حلال دي شي او راتلونکی کال دي د دي حج قضاء راوړي لقوله ﷺ ﴿من فاته عرفة بليل فقد فاته الحج فليتحلل بعمرة وعليه الحج من قابل﴾ (یعنی دچاچې وقوف عرفه په شپه کې فوت شوه نو دده حج فوت شونو دی دی عمره وکړي ځان دي حلال کړي او دده پر ذمه ائنده کال حج لازم دی ).څرنګه چې له فوات الحج وروسته ده دعمري په افعالو (طواف اوسعی )سره تحلل حاصل کړی په دي وجه پر ده دم لازم نه دي .

ف :دامام شافعی رحمه الله په نزد په داسې کس باندي دم هم لازم دي همدا دحسن بن زیادقول دی ولی چې له حضرت عمر رضی الله عنه څخه همداشان مروی ده ،امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې داکس په افعال عمره سره حلال شوی دی اودم دافعال عمره بدل دی لهذادواړه به نه سره جمع کوي ترکومه چې دحضرت عمر رضی الله عنه روایت دی نو هغه زموږ په نزد په استحباب باندي محمول دی .

(۲۱۵)یعنی دعمري ارکان دبیت الله طواف اودصفااومره ترمنځ سعی ده او احرام شرط دی .عمره کله هم نه فوت کیږي ولی چې دعمري لپاره کوم وخت متعین نه دی په ټول کال کې هروخت اداء کیدای شي .البته صرف په پنځو ورځو کې عمره اداء کول مکروه تحریمي ده یعنی په یوم عرفه (نهم ذی الحجه )یوم النحر(لسم ذی الحجه )اوایام تشریق (یولسم، دولسم ،دیارلسم ذی الحجه )کې .په دي ورځو کې عمره په ځکه مکروه تحریمي ده چې داایام الحج دي نو دادحج لپاره متعینې دي ،همدا راز حضرت عائشه رضی الله عنها په دي ورځو کې عمره مکروه ګڼله .

(۲۱۶)یعنی داحنافو دصحیح قول مطابق عمره سنت مؤکده ده که څه هم ځینې یې واجب بولي لقوله ﷺ «الحج فريضة والعمرة تطوع» (یعنی حج فرض دی او عمره تطوع ده ) :علامه علاؤ الدین الحکفی رحمه الله فرمايی والعمرة في العمر مرة سنة مؤكدة على المذهب (الدر المختار علی هامش رد المحتار: ۲/۱۶۳ )

ف :دامام شافعی رحمه الله دعمري دفرضیت قائل دی لقوله تعالی ﴿وأتموا الحج والعمرة لله﴾ وقال ﷺ «العمرة فريضة كفريضة الحج» .داحنافو دلیل داعرابی حدیث دی ﴿قال يارسول الله اخبرني عن العمرة اواجبة هي فقال ﷺ لاوان تعتمر خيرلک﴾ (یارسول الله ﷺ ماته دعمري په باره کې خبرراکړه چې ایاعمره واجب ده ؟نبی کریم ﷺ وفرمایل یا(نه ده واجب )که ته عمره وکړي نو دا ستالپاره بهتره ده ).باقی په ایت مبارک کې داتمام ذکر دی او اتمام له شروع څخه وروسته وي اوله شروع څخه وروسته موږ هم دوجوب عمره قائل یو .اودحدیث شریف مطلب دادی چې دعمري افعال هم مقدر دي لکه څرنګه چې دحج افعال مقدر وي ،فریضة په معنی دمقدرة .

## بَابُ الْحَجِّ عَنِ الْغَيْرِ

داباب دبل چاله طرف څخه دحج کولو په بیان کې دی

اصل خو دا ده چې دانسان عمل دخپل ځان لپاره وي په دي وجه له دي څخه وړاندي دخپل ځان لپاره دحج کولو بیان وو اوس دغیرالله طرف څخه دحج کولو احکام بیانوي .

ف :دکوم عمل ثواب بل ته دبخښلو په باره کې داهل سنت او معتزله ګانو اختلاف دی دمعتزله وو په نزد جائز نه دی لقوله تعالی ﴿وأن ليس للإنسان إلا ما سعى﴾ (یعنی دانسان لپاره هم هغه څه دي کوم چې ده سعی کړي وي

)لهذادکوم دپاره چې انسان خپله سعی ونه کړي دهغه ثواب ده ته نه رسيږي .داهل سنت په نزدد خپل عمل ثواب بل ته وربخښل صحيح دي داهل سنتو دليل دنبی کريم ﷺ عمل دی چې ﴿أَنَّهُ ﷺ ضَحَّى بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ أَحَدُهُمَا عَنْ نَفْسِهِ وَالْآخَرُ عَنْ أُمَّتِهِ﴾ (يعنی نبی کريم ﷺ دوه دتوراوسپين رنګ پسونه ذبح کړل يوله خپل طرف څخه اودوهم دخپل امت له طرف څخه )،نوله دي څخه ثابته شوه چې دخپل عمل ثواب بل ته وربخښل صحيح دي ،معتزله و ته ځواب ورکړل شوی دی چې په ايت شريف کې له سعی څخه سعی ايمانی مرادده يعنی ديوه کس ايمان بل کس ته مفيدنه دی سعی عملی مرادنه ده .

(٢١٧)النِّيَابَةُ تَجْزِي فِي الْعِبَادَةِ الْمَالِيَّةِ عِنْدَ الْعَجْزِ وَالْقُدْرَةِ (٢١٨)وَلَمْ تَجُزْ فِي الْبَدَنِيَّةِ بِحَالٍ (٢١٩)وَفِي الْمُرَكَّبِ مِنْهُمَا تَجْزِي عِنْدَ الْعَجْزِ فَقَطْ (٢٢٠)وَالشَّرْطُ الْعَجْزُ الدَّائِمُ إِلَى وَقْتِ الْمَوْتِ (٢٢١)وَإِنَّمَا شُرِطَ عَجْزُ الْمَنُوبِ لِلْحَجِّ الْفَرْضِ لَا لِلنَّفْلِ

**ترجمه** :اونيابت جاري کيږي په عبادات ماليه وکې په وخت دعجزکې هم اوپه وخت دقدرت کې هم ، اوپه بدنی عبادات کې په هيڅ حال کې نه جاري کيږي ،اوکوم چې له دواړو څخه مرکب وي په هغه کې صرف دعجزپروخت جاري کيږي، اوشراط دائمي عجزدی دمرګ تروخت پوري ،اوشرط کړل شوی دی دنائب جوړونکي دحج فرض څخه عاجزوالی نه له نفلی حج څخه .

**تشريح** :(٢١٧)عبادات پردري قسمه دي (١)محض مالي عبادات لکه زکوة (٢)محض بدني عبادات لکه روژه ،لمونځ، اعتکاف وغيره (٣)کوم چې له دواړوڅخه مرکب وي لکه حج ،چې په دي کې مال هم مصرفيږي اونفس هم په مشقت کې اچول کيږي .په دي دريواقسامو کې په اولنی قسم کې په هرحال نيابت جاري کيږي يعنی داختيارپه حالت کې هم اود اضطرارپه حالت يعنی دناروغي اومعذوري وغيره په حالت کې هم ولی چې له زکوة څخه مقصودداد ی چې مال فقراؤته ورسيږي او دفقراؤضرورت پوره شي نوکله چې ده دخپل وکيل په ذريعه سره مال فقراؤته ورساوو نوعبادت پوره شو .په ځينونسخوکې دالنيابة تجري پرځای النيابة تجزی دی په معنی دمستغنی کولوسره .

(٢١٨)اوپه دوهم قسم يعنی عبادات بدني کې په هيڅ حال کې هم نيابت نه جاري کيږي نه داختيارپه حالت کې اونه داضطرارپه حالت کې لقوله ﷺ لايصم احدعن احدولايصل احدعن احد(څوک دي دچاله طرفه روژه نه نيسی اونه دي څوک دچاله طرفه لمونځ اداء کوي )،همدارارله عبادت بدنی څخه مقصوددعابدخپل نفس په تعب اومشقت کې اچول کې دي اوښکاره خبره ده چې دامقصوددوکيل اونائب په ذريعه سره نه حاصليږي ولی چې دوکيل اونائب په صورت کې تعب اومشقت دوکيل اونائب وي نه دموکل لهذاپه دي قسم کې نيابت صحيح نه دی .

(٢١٩)اوپه دريم قسم (يعنی کوم چې له بدني اومالي دواړوڅخه مرکب وي )کې څرنګه چې دواړه اړخه شته دمالي عبادت اړخ هم اودبدني عبادت اړخ هم په دي وجه په دواړومشابهتونوپه عمل کولوسره وويل شول چې صرف دعجزپه وخت په ده کې نيابت جاري کيدای شي دمالي اړخ په رعايت کولوسره ،اوبلاعجزپه ده کې نيابت نه شي جاري کيدای دبدني اړخ په رعايت کولوسره .

(٢٢٠)بياپه دي دريم قسم کې وقتی عجزکافی نه دی بلکه دائم الی وقت الموت عجزشرط دی ولی چې حج دعمرفريضه ده کوم کال دده لپاره متعين نه دی نوکه عجزدائمي نه وي نوداکس عاجزنه شمارل

کيږي .نوکه چادمرض ياقيدپه حالت کې کوم بل څوک نائب جوړکړاوحج ته يې واستاووبياپه خپله روغ ياازادشونودنائب له طرف اداءشوی حج کافی نه دی.

(۲۲۱)مګرداچې وويل شوچې دآمردائمي عجزشرط دی دافرض حج حکم دی دنفلی حج حکم دانه دی بلکه په هغه کې بلاعجزهم نيابت جائزدی ولی چې دنوافلوپه باب کې وسعت ډيردی کوم چې په فرائضوکې نه وي همداوجه ده چې نفلی لمونځ سره له قدرت علی القيام په ناسته سره جائزدی.

**ف**:ظاهرمذهب دادی چې حج دآمرله طرفه کيږي دمامورله طرفه نه ،حال داچې دامام محمد رحمه الله په نزددمامورله طرفه واقع کيږي آمرته دمصرف ثواب حاصليږي ولی چې حج بدل دصوم دفديې په شان دی ،اوڅنګه خبره ده چې دروژې دفديې ورکولوپه صورت کې دفديې ثواب حاصليږي نه دروژې ثواب ،همداشان آمرته دمال مصرفولوثواب حاصليږي نه دحج داداءکولو كماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد:ثم ظاهر المذهب ان الحج يقع عن المحجوج عنه وهذاظاهر المذهب كذانقله شمس لائمة السرخسي وهو الصحيح كمافي كثير من الكتب لكن ذهب عامة المتاخرين كمافي الكشف الى ان الحج يقع عن المامور وللآمر ثواب النفقة وهو رواية عن الامام محمدواختاره المتاخريون منهم صدرالاسلام والاسبيجابي وقاضيخان ان القول اقرب الى الفقه لكن صحح في فتاواه القول الاول (هامش الهداية: ۱/۲۷۷)

**ف**:مولاناخالدسيف الله رحمانی مدظله ليکي :فقهاؤويلي دي چې په حج بدل کې حج افراديا حج قران کيدای شي ،حج تمتع نشي کيدای،مګردفقهاؤله ځينوعباراتوڅخه دحج تمتع جوازهم معلوميږي......په ماضی قريب کې مفتی محمدشفيع صاحب رحمه الله له ځينوشرائطوسره اجازت ورکړی دی.

ليکن په دي زمانه کې عام انسان په حج اوعمره کولوکې ازادنه دی چې کله اوپه کوم وخت کې چې يې زړه وغواړي ولاړشي اودطول احرام څخه دخلاصيدلولپاره ايام حج ته بالکل قريب سفروکړي .هرطرف ته دحکومتونوسختې پابندياني دي ،په دي وجه که کوم حج بدل کونکې لره له وخت څخه ډيروړاندي دتللومجبوري وي اويه احرام طويل کې داحرام دواجباتوپابندي سخته ورته ښکاره شي نوده لره دتمتع کولوګنجائش شته.

په دي وجه په موجوده حالاتوکې که دافراداوقران په وجه سره تردومره ورځوپوري په حالت احرام کې پاتې کيدل وي چې حاجې لره دهغه برداشت کول مشکل وي نوپه حج بدل کې هم دتمتع ګنجائش شته .(جديدفقهی مسائل :۱/۱۶۳)

(۲۲۲)وَمَنْ أَحْرَمَ عَنْ آمِرِيهِ ضَمِنَ النَّفَقَةَ (۲۲۳)وَدَمُ الإِحْصَارِ عَلَى الآمِرِ (۲۲۴)وَدَمُ القِرَانِ وَدَمُ الجِنَايَةِ عَلَى المَأْمُورِ (۲۲۵)فَإِنْ مَاتَ فِي طَرِيقِهِ يُحَجُّ عَنْهُ مِنْ مَنْزِلِهِ بِثُلُثِ مَا بَقِيَ (۲۲۶)وَمَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ عَنْ أَبَوَيْهِ فَعَيَّنَ صَحَّ

**ترجمه** :اوچاچې احرام وتاړه ددوامرکونکوله طرف څخه نودی ضامن دی دنفقې ،اودم احصارپرامر کونکې باندي دي، اودم قران اودم جنايت پرمامورباندي دي ،نوکه هغه مړشوپه لاره کې نوحج دي وکړای شي دده له طرف څخه دده له کوره دباقی مانده دثلث په ذريعه سره ،اوچاچې احرام وتاړه دموراوپلارله طرف څخه بيايې يومتعين کړنوصحيح دی.

**تشريح** :(۲۲۲) که په دووکسانوکې هريوه يوکس دده له طرفه دحج په اداء کولوکې وکيل جوړکړنودي وکيل ددواړوله طرف څخه احرام وتړی نوداحج په خپله دوکيل له طرفه کيږي دموکلانوله طرفه نه کيږي ولی

چې په آمرانوکې هريوه ده ته ددې خبرې حکم کړی وو چې بلاشرکت غيردې دده له طرفه حج اداء کړي حال داچې وکيل خودده مخالفت وکړدده دحکم مطابق عمل يې ونه کړلهذاداحج دامرانوله طرف څخه نه کيږي .اووکيل دهغه مال ضامن دی کوم چې دله امرانوڅخه مصرف کړی دی ولی چې ده دموکل مال دخپل ذاتي حج لپاره مصرف کړ.

(۲۲۳)که داوکيل محصرشواوده ددم احصارقرباني وکړه اوحلال شونودادم دطرفينوپه نزدپه موکل واجبيږي اودامام ابويوسف رحمه الله په نزدپروکيل واجب دي ولی.چې دم احصاردحلال والی لپاره واجبيږي ترڅوداحرام دمدی دطويل والی ضررختم شي اوظاهره ده چې ضرردوکيل دی نودم احصاربه هم پروکيل واجب وي .دطرفينودليل دادی چې وکيل خوپه دې ذمه واري کې موکل مبتلاکړی دی نوچاچې مبتلاکړی دی خلاصوالی يې هم پرهغه واجب دی .

ف:دطرفينوقول راجح دی لمافي الدرالمختار:ودم الاحصارلاغيرای لاغيردم الاحصارمن باقي الدماء الثلاثة وهودم الشکرفی القران والتمتع ودم الجناية(علی الامر)هذاعندهماوعليه المتون وعندابی يوسف علی المامور(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲/۲۶۷)

(۲۲۴)اودم قران پروکيل يعنی دماموړپرذمه لازميږی نه پرموکل ،ولی چې دم قران دالله تعالی له طرف څخه دجمع بين النسکين دتوفيق دشکرپه طورسره واجبيږي اوتوفيق وکيل ته ورکړل شوی دی لهذادم به هم دوکيل پرذمه وي ،همداشان دم جنايت هم دوکيل يعنی ماموړپرذمه لازم دي ولی چې دجنايت صدورله وکيل څخه شوی دی نه له موکل څخه په دی وجه به دم هم دوکيل پرذمه وي .

ف:ددم قرن صورت دادی چې دووامرانويوکس ته امروکړيوه وويل چې زماله طرف څخه حج اداء کړه ،دوهم وويل چې زماله طرف څخه عمره اداء کړه دواړه ده ته دحج قران اجازه ورکړه وکيل حج قران اداء کړپه کوم کې چې دامرانودوينا مطابق حج اوعمره دواړه اداء شول نوپه دي صورت کې چې کوم دم قران دي هغه دوکيل پرذمه دي .اوکه يوه کس دی دحج وکيل جوړکړدی ولاړی جج قران يې اداء کړنودا دموکل دامرمخالفت ګڼل کيږي لهذاوکيل به دموکل دنفقې ضامن وي .

(۲۲۵)اوکه وکيل يعنی ماموريه لاره کې مړشونودکوم چاله طرفه چې دی دي حج ته روان وو دهغه له باقي ترکه څخه دي ثلث مال راوخيستل شي دهمدي آمرله طرفه دي دده له کورڅخه دوهم ځل حج وکړای شي په دي شرط چې دمابقی ثلث دده له کورڅخه دحج کولودپاره کافي وي اوکه دمابقی ثلث دده له کورڅخه دحج کولودپاره کافی نه وي نوبياچې له کومه ځايه دحج کولولپاره کافی وي له هغه ځايه دي وکړي داامام ابوحنيفه رحمه الله قول دی .صاحبين فرمايي چې له هغه ځايه دي حج وکړل شي چيرته چې دوکيل مړګ واقع شوی دی .داختلاف پريوبل اختلاف باندي مبنی دی هغه داچې يوڅوک دخپل فرضی حج دادا، کولولپاره روان وو چې په لاره کې ناروغه شوااووصيت يې وکړچې زماله طرفه څخه حج وکړئ بيامړشونودامام صاحب په نزدبه دده له کوره څخه حج کول کيږي اوصاحبين فرمايي چې چيرته دی وفات شوله هغه ځايه دي حج وکړای شي ،دامام صاحب دليل دادی چې څومره سفرچې ده کړی دی هغه داحکام دنياپه حق کې باطل دی اودوصيت تنفيذهم له احکام دنياڅخه دی لهذابيرته به يې له سره راګرځوي

گويادى بالكل له كوره نه دى وتلى.صاحبين فرمايي چې دده داعمل يعنى سفرحج نه ده باطل شوى لهذاپرهمدي بناء كول صحيح دي نوچيرته چې دى وفات شوى دى له هغه ځايه دي حج وكول شي .

ف:دامام صاحب قول قياس دى اودصاحبينو قول استحسان دى اوداله هغوځايونوڅخه دى په كوم كې چې قياس ته پراستحسان ترجيح حاصله ده كمافي الشامية:واعلم ان هذاالموضع من المواضع التى رجح فيهاالقياس على الاستحسان واخر صاحب الهداية قولهماروهوالاستحسان فظاهر صنعه يقتضى ترجيح الاستحسان لكن المتون على الاول اعنى على اختياروجه القياس وصرح علامة قاسم بتصحيحه فى كتاب الوصايافهذاالموضع مماقدم فيه القياس على وجه الاستحسان (ردالمحتار: ٢/٢٦٣)

ف:امام ابويوسف رحمه الله فرمايي چې لومړى ځل چې يې كوم دتركې ثلث عليحده كړى دى دهغه په باقي مانده باندي دى حج وكړاى شي ،امام محمد رحمه الله فرمايي كوم مال چې يې وكيل ته وركړى وو كه له هغه څخه څه پاتې وي نوپه هغه دي حج وكړاى شي كه په هغه سره حج نه شواى كيداى نووصيت باطل دى .امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد(لكه څرنگه چې تيره شوه )داده چې دچاله طرفه چې دى حج ته روان وو دهغه له باقي مانده تركه څخه به يوثلث مال واخلې دهمدي آمرله طرف څخه دي دوهم ځل حج وكړاى شي اوهمداقول راجح دى كمافي الهندية:اذااوصى بان يحج عنه فمات الحاج فى طريق الحج يحج عنه من منزله بثلث مابقى من ماله وهذاعندابى حنيفه كذافى التبيين (هنديه: ١/٢٠٩)نودائمه ثلاثه ودااختلاف په دووځايونوكې دى يوداچې حج له كومه ځايه څخه وكړاى شي اودوهم داچې په كوم مال سره وكړاى شي .

(٢٢٦)كه چادخپل موراوپلارله طرف څخه احرام وتړى اووروسته يې په دوئ كې ديوه لپاره متعين كړنوداصحيح دى ولى كوم څوك چې دغيرله طرف څخه دغيردوينابغيرحج كوي نوهغه همداكوي چې دخپل حج ثواب دي غيرته وربخښي اوخپل ثواب بل چاته وربخښل داحرام پروخت لغودي ولى چې تراوسه حج شوى نه دى نوثواب به څرنگه بل ته وروبخښي لهذااحرام پروخت چې كوم دده دواړودپاره نيت كړى وو هغه نيت لغودى نوله حج كولوڅخه وروسته چې دكوم لپاره متعين كول وغواړي كولى يې شي .

ف:نن صباچې كوم دمرده له وصيت څخه بغيرده قربان دده له طرف څخه حج كوي كوم ته چې عوام حج بدل وايي دااصطلاحي حج بدل نه دى بلكه داايصال ثواب لپاره نفلى حج دى لكه څرنگه چې حضرت مولانامحمديوسف لدهيانوى شهيد رحمه الله ديوسوال په ځواب كې ليكي .كه وصيت نه وي نوڅرنگه چې يې خوښه وي حج كولى شي هغه حج بدل نه دى بلكه دايصال ثواب لپاره دى دكوم چې به ثواب الله تعالى هغه ته رسوي دچاله طرف څخه چې كړل شوى وي .(اپكى مسائل اوران كاحل: ۴/۶۹)

ف:افضل اوبهترخودټولوفقهاؤپه نزدداده چې حج بدل په هغه كس سره وكړاى شي چاچې خپل حج فرض اداء كړى وي اوچاچې خپل فرضى حج نه وي اداء كړى دهغه په ذريعه سره حج بدل كول مكروه تنزيهي ده اوكوم كس چې حج بدل ته ليږل كيږي كه دده پرذمه خپل فرضى حج وي اوهغه يې نه وي اداءكړى نودده لپاره حج بدل كول مكروه تحريمي اوناجائزدى البته دليږونكي حج په هرصورت اداء كيږي .(فتاوى عثمانى: ٢/٢١۴)

ف:چاچې خپل حج نه وي كړى اوپرده فرض هم نه وو نومحض مكي مكرمې ته په رسيدلوسره پرده دراجح قول مطابق حج نه فرضيږي .(فتاوى عثمانى: ٢/٢١۵)

## بَابُ الْهَدْيِ

### داباب دهدی په بیان کې دی

له دې ځخه وړاندې دحج په تفصیلي بیان کې دهدی ذکرځوځله وشونو اوس مصنف رحمه الله دهدی او دهدی دمتعلقاتو تفصیل بیانول غواړي ،همدارازحج تمتع ،قران ،جنایات ،احصاروغیره دهدی اسباب دي هدی مسبب ده او مسبب له سبب ځخه وروسته وي په دی وجه یې به اخرکې دهدی احکام ذکرکوي ،هدی لغةً اوشرعاً ،مایهدی الی الحرم من النعم للتقرب (یعنی هدی هغه ځاروی دی کوم چې دتقرب لپاره حرم ته بوتلل شي )ته ویل کیږي .

(۲۲۷)أَدْنَاهُ شَاةٌ وَهُوَ إِبِلٌ وَبَقَرٌ وَغَنَمٌ (۲۲۸)وَمَا جَازَ فِي الضَّحَايَا جَازَ فِي الْهَدَايَا (۲۲۹)وَالشَّاةُ تَجُوزُ فِي كُلِّ شَيْءٍ إِلَّا فِي طَوَافِ الرُّكْنِ جُنُبًا وَوَطْءٍ بَعْدَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ (۲۳۰)وَيَأْكُلُ مِنْ هَدْيِ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ فَقَطْ (۲۳۱)وَخَصَّ ذَبْحَ هَدْيِ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ بِيَوْمِ النَّحْرِ فَقَطْ (۲۳۲)وَالْكُلُّ بِالْحَرَمِ لَا بِفَقِيرِهِ

**ترجمه** :ادنی هدی پسه دی او هغه اوښ ،غوا اوپسه ځخه کیدای شي ،او کوم ځاروی چې په اضحیه کې جائزدی هغه په هدی کې هم جائزدی ،اوپسه جائزدی په هرشي کې مګردطواف رکن په حالت جنابت کې دکولو په صورت کې او دوطی کولو په صورت کې له وقوف عرفه ځخه وروسته ،او خورک کولی شي صرف له هدی تطوع او هدی متعه او هدی قران ځخه، او خاص ده ذبح کول دهدی تمتع او هدی قران داخترله ورځې سره ،او ټولې خاصې دي له حرم سره نه له فقیره دحرم سره .

**تشریح** :(۲۲۷)یعنی دهدی ادنی قسم پسه دی ،او هدی له دری قسمه ځارویو ځخه کیدای شي اوښ ، غوا،اوپسه ولی چې هدی هغه ده کومه چې دتحفې په ډول سره حرم ته ولیږدول شي تر ځو په حرم کې ددې په ذبح کولو سره تقرب حاصل شي په دې معنی کې دادري واړه اقسام برابردي نوله هر یوه ځخه هدی کیدای سي .همداراز ددې دري قسمه ځارویو دنبی کریم ﷺ له زمانې ځخه ترنن پوري بطور هدی یېول متوارث هم دي .بیانکاره ده چې په دوئ کې ادنی پسه ،اوسط غوا او اعلی اوښ دی .

(۲۲۸)یعنی کوم قسم ځاروی چې په اضحیه کې ذبح کول جائزدی هغه په هدی کې هم جائزدی ولی چې هدی هم داضحیه په شان داسې قربت دی کوم چې له وینې تویولو سره متعلق دی نوکوم شرائط چې داضحیه دځاروی لپاره دي چې له عیوبو ځخه به سالم وي هغه شرائط دهدی دځاروي لپاره هم دي .

**ف**:داهم شرط دی چې له دوئ ځخه چې کوم یو هم وي ثنی به وي یاله ثنی ځخه به اعلی وي .بیا داوښانو ثنی دادی دکوم چې پنځه کاله پوره شوي وي او شپږم کال یې شروع وي .اودغوا ثنی داده چې دوه کاله یې پوره شوي وي او دریم یې شروع وي .اودپسه ثنی هغه ده دکوم چې یو کال مکمل شوی وي اودوهم یې شروع وي .البته پسه که نبه چاغ وي کوم چې دچاغښت له کبله دثنی سره برابرمعلومیږي نو جزع یعنی له ثنی ځخه دکم عمروالاهم جائزدی لقوله ﷺ لاتذبحوا الامسنة الاان یعسرعلیکم فتذبحوا جذعة من الضان ° (تاسې له مسنه ځخه ماسوا دقرباني ځاروی مه ذبح کوئ اماسوا له هغه ځخه چې که تاسې ته داسې ځاروی نه شو ملاونو تاسې له یوه کال ځخه دکم عمر دپسه بچی ذبح کړئ ).

(۲۲۹)یعنی دحج په باب کې چې چیرته هم دوجوب دم اووجوب هدی حکم وي هلته ده پسه ذبح کول کافی ده مگردوه مواقع داسې دي چیرته چې اوښ ذبح کول ضروري ده پسه کافی نه ده .یوداچې کوم محرم طواف زیارت دجنابت په حالت کې وکړي اودوهم داچې له وقوف عرفه څخه وروسته اوله حلق الرأس څخه وړاندی کوم محرم جماع وکړي ،څرنگه چې دادوه جنایتونه لړلوی دي په دي وجه سره په دي دوڅایونوکې بدنه ذبح کول ضروري ده پسه کافی نه ده ترڅوپه لوی اوکوچنی جنابت کې فرق ښکاره شي.
ف:دبعدالوقوف بعرفة قید په لگولوسره یې احترازوکړله دي صورت څخه چې کوم حاجی له وقوف عرفات څخه وړاندې جماع وکړي ولی چې په دي صورت کې اوښ نه دی واجب بلکه پسه ذبح کول واجب دی .اودقول صحیح مطابق که څوک له وقوف عرفات څخه وروسته سرهم وخریي بیاجماع وکړي نوپرده هم اوښ نه ده واجب بلکه پسه واجب دی کمافی الدرالمختار:ووطء بعدالوقوف قبل الحلق امابعده ففی وجوبها خلاف والراجح وجوب الشاة(الدرالمختارمع الشامیة:۲/۲۷۱)
(۲۳۰)یعنی صاحب هدی لره له دم تطوع ،دم تمتع اودم قران څخه خورک جائزبلکه مستحب دی ولی چې نبی کریم ﷺ دخپلې هدی غوښه هم وخوړله اوشورواپې هم وڅښله ،مگرشرط دادی چې هدی حرم ته ورسیږي ،اوکه حرم ته له رسیدلوڅخه وړاندي ذبح شوه نوله دي څخه له فقراؤماسوا هیڅ څوک خورک نشي کولای.
ف:همداشان له مذکوره بالادري قسمه هدایاوڅخه اغنیاء هم خورک کولی شي ولی له کومې هدی څخه دصاحب هدی دپاره خورک جائزوي له هغې څخه غنی لره هم خورک جائزدی.
ف:مصنف رحمه الله په لفظ دفقط سره اشاره وکړه چې له دم تطوع ،دم قران اودم تمتع څخه علاوه (مثلادم کفاره ،دم نذراودم احصار)صاحب هدی اونوراغنیاء نشي خوړلی هغه به خاص فقراء خوري ولی کوم وخت چې نبی کریم ﷺ په مقام حدیبیه کې له عمري کولوڅخه منع کړای شونونبی کریم ﷺ دناجیة الاسلمی رضی الله عنه په لاس هدایامکې مکرمې ته ولیږدولې اوویې وفرمایل «لاتاکل انت ورفقتک منهاشیئا»(ته اوستاملگری له دي څخه هیڅ مه خورئ )وقال ابن عابدین:(قوله ولواکل من غیرها)ای غیرهذه الثلاثة من بقیة الهدایاکدماء الکفارات کلهاوالنذوروهدی الاحصاروالتطوع الذی لم یبلغ الحرم وکذالواطعم غنیا(ضمن مااکل)(ردالمحتار:۲/۲۷۱)
(۲۳۱)یعنی له هدایاوڅخه صرف هدی تمتع اوهدی قران داخترله ورځې سره خاص دي لقوله تعالی ﴿فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ﴾ (یعنی وخورئ تاسې له دي قرباني څخه اوورخورئ پریشان حال فقیرته بیاخیري لیري کړئ) اوقضاء تفث یعنی خیرمیري لیري کول له یوم نحرسره خاص دي نوپه کوموامورچې قضاء تفث عطف دی هغه به هم له یوم نحرسره خاص وي ،همدارازدادم نسک دي لهذاداضحیه په څیربه داهم له یوم نحرسره خاص وي.
(۲۳۲)هرقسم هدایاله حرم سره خاصې دي له حرم څخه دباندي ذبح کول جائزنه دي لقوله تعالی ﴿هديا بالغ الكعبة﴾ (هغه هدی کعبې ته رسیدونکې )،همدارازپه دي وجه سره هم چې هدی دداسې شي نوم دی کوم چې هدیة وتحفة کوم ځای ته ویوړل شي اوهغه ځای حرم دی .البته دتصدق لپاره حرم خاص نه دی په مساکین حرم ومساکین غیرحرم تولوباندي یې صدقه کولی شي ولی چې صدقه قربت معقوله دی

نوپرهرفقيرصدقه كول قربت دى .هودحرم پرمساكينوصدقه كول افضل دى الاداچې نورخلګ ډيرمحتاج وي.

ف:قرباني پرڅلورقسمه ده (۱)كومه چې له مكان اوما ن دواړوسره خاصه وي دادم تمتع اودم قران دي كوم چې له يوم نحراوحرم سره خاص دي ،اوهمداحكم ددم احصاردى دشيخينوپه نزد.(۲)كومه چې له مكان سره خاصه وي له زمانې سره خاصه نه وي لكه دم جنايات ،كوم چې له حرم سره خوخاص دي مګرله يوم نحرسره خاص نه دي ،همداحكم ددم احصاردى دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد ،اوهمداراجح دى كمافى الفقه الاسلامى وادلته :وعلى الراى الاول وهوالراجح يكون زمان ذبح الهدى مطلق الوقت لايتوقت بيوم النحرسواء كان الاحصارعن الحج ام عن العمرة (۲۳۵۳/۳).(۳)كومه چې له زمانې سره خوخاص وي مګرله مكان سره خاص نه وي لكه اضحيه،چې له يوم نحرسره خاصه ده مګرپه كوم مكان پسې خاصه نه ده .(۴)كومه چې نه له مكان سره خاصه وي اونه له زمانې سره خاصه وي لكه دم نذردطرفينوپه نزد.

ف:قرباني يوداسې عمل دى چې په هغه كې نيابت صحيح دى په دي وجه دبينك په واسطه سره په قرباني كولودقرباني فريضه اداء كيږي ،مګرپه دي كې ددي خبري خيال ساتل ضروري دى چې په حلق اوقرباني كې تقديم اوتاخيرنه وي كه نه نو دم جنايت لازميږي همداشان په قرباني كې دځاروى ذبح كول ضروري دى صرف په دقرباني درپوپه جمع كولوسره ذمه نه فارغيږي. (حقانية: ۲۷۷/۴)

(۲۳۳)وَلَايَجِبُ التَّعْرِيفُ بِالْهَدْيِ (۲۳۴)وَيَتَصَدَّقُ بِجِلَالِهَا وَخِطَامِهَا (۲۳۵)وَلَمْ يُعْطِ أَجْرَةَ الْجَزَّارِ مِنْهَا (۲۳۶)وَلَا يَرْكَبُهُ بِلَاضَرُورَةٍ (۲۳۷)وَلَا يَحْلِبُهُ وَيَنْضَحُ ضَرْعَهُ بِالنُّقَاخِ (۲۳۸)وَإِنْ عَطِبَ وَاجِبًا أَوْتَعَيَّبَ أَقَامَ غَيْرَهُ مَقَامَهُ وَالْمَعِيبُ لَهُ (۲۳۹)وَلَوْنَطَوَّعَ نَحَرَهُ وَصَبَغَ نَعْلَهُ بِدَمِهِ وَضَرَبَ بِهِ صَفْحَتَهُ وَلَمْ يَأْكُلْهُ غَنِيٌّ (۲۴۰)وَتُقَلَّدُ بَدَنَةُ التَّطَوُّعِ وَالْقِرَانِ وَالْمُتْعَةِ فَقَطْ

**ترجمه** :اوواجب نه ده هدى عرفات ته بيول،اوصدقه دي كړى دهدى ځل اولګام ،اونه دي وركوي قصاب ته مزدوري له هدى څخه ،اونه دي سوريږي په هدى باندي بلاضرورته ،اونه دي ددي شيدي لوښې اوودي پاشي ددي پرتيانوباندي يخې اوبه ،نوكه هلاكه شوه واجب هدى يامعيوبه شوه نودوهمه دي ددي پرځاى وكړي اومعيوبه به ده ته پاته شي ،اوكه نفلي وه نوذبح دي كړي اورنګ دي كړى ددي څپلى ددي په وينه سره اوودي لړي په وينه سره ددى اړخ اونه دي خوري داغنى ،اوقلاده دي واچوي صرف په نفلى ،تمتع اودقران په هدى كې .

**تشريح** :(۲۳۳)هداياعرفات ته بيول واجب نه دي ولى چې واجب هدى ده كومه چې حرم ته ديبولوخبروركوي عرفات ديبولونه ،البته دم تطوع ،دم تمتع اودم قران عرفات ته بيول حسن دي ولى چې دادم نسك دي دكوم چې مبنى پرتشهيرده. باقى دم كفاره عرفات ته بيول حسن نه دي ولى چې ددم كفاره موجب جنايت دى په كوم كې تستراولى دى .

(۲۳۴)اوداهم حكم دى چې دهدى جهول(ځل) اولګام دي صدقه كړي .(۲۳۵)اودهدى غوښه دي جزار(قصاب)ته په مزدوري كې نه وركوي ولى چې نبى كريم ﷺ حضرت على رضي الله عنه ته فرمايلي وو چې دهداياوجهولونه اولګامونه صدقه كړه اوله دوئ څخه دقصاب مزدوري مه وركوه .

(۲۳۶)يعنى كه چاله ځان سره دقربانۍ څاروى بيولى وي نوكه ده ته پرهغه دسوريدلوضرورت نه وي نونه دي پري سوريږي ولى چې داده خالص دالله تعالى پرنوم كړي ده لهذاددي عين يامنافع دخپل ځان دپاره مصرفول مناسب نه دي، نوكه داكس پرهدى سورشوچې په هغه سره هدى ته نقصان ورسيدو نوصاحب هدى ددي نقصان ضامن دى اوداضمان به په فقراؤصدقه كوي .

ف:البته كه ده لره په هغه دسوريدلويا سامان بارولوضرورت پيش شونوسوريدلى شې اوسامان بارولى شې ولى چې نبى كريم ﷺ يوه كس ته دهدى په څاروى دسوريدلوحكم كړى وو ،دكوم چې علماؤ همداتاويل كړى دى چې هغه كس محتاج وو ،همدارز حرم ته له رسيدلوڅخه وړاندې هدى دده پرملك پاته ده همداوجه ده چې كه حرم ته له رسيدلوڅخه وړاندې دى وفات شونوهدى ميراث ګرځي لهذا دضرورت پروخت ده لره له دې څخه فائده اخيستل جائزده .

(۲۳۷)كه هدى شيدلرلې نوهغه دي نه لوبنې ولى چې شيدې له هدى څخه پيدا كيږي اودهدى جزء دي له كوم څخه چې ده لره فائده اخيستل مناسب نه ده لهذا شيدې دي خپل ځان لپاره نه لوبنې بلكه كه دذبح وخت قريب وي نودهدى په تيانودي يخې اوبه وروشيندي ترڅوشيدې وچې شې اوكه دذبح وخت ليري وي نوبيادضررخطره ده لهذاشيدې دي ولوبنې اوصدقه دې كړي ،كه يې ولوبنلې نوصدقه كول لازم دي .

(۲۳۸)يعنى چاچې هدى له ځان سره هدى بيولې وي اوهغه هلاكه شې نوكه نفلى هدى وه نوپه بيونكې باندې هيڅ نشته ولى چې قربت له همدي سره متعلق وو كومه چې فوت شوه اوكه داهدى واجب هدى وي نوددي پرځاى بله هدى واجب ده ولى چې وجوب ددې كس پرذمه باندې باقى دى .اوكه ډيره عيب جنه شويعنى داسې عيب په كې پيداشوكوم چې دقربانۍ لپاره مانع دى نوبيادې هم بل څاروى ددې پرځاى ودروي ولى چې واجب دده پرذمه باقى ده .اوداعيب داره څاروى دده دنوروا ملاكوپه څيرشوولى چې څاروى دهدى لپاره په متعين كولوسره هغه دمالك له ملك څخه نه وځي نوكله چې هغه په دى لاره كې دصرف كولوقابل نه شوپاته نوپه كوم بل مصرف كې دې مصرف كړي .

(۲۳۹)يعنى كه بدنه په لاره كې مرګ ته قريبه شې نوكه نفلى وي نوذبح دي كړي اوددې نعل(يعنى دهدى ښنګرى ياهغه قلاده كومه چې ددې په غاړه كې اچول شوي ده )دې په وينه ورنګوي اوددې پراړخ دې وينه ووهې داددې لپاره ترڅوچې معلومه شې دابدنه دهدى ده نوله دې څخه دې صرف فقراء وخوري پخپله صاحب دهدى اونوراغنياء دې له دې څخه خورک نه كوي ولى چې له هدى څخه دخورک جوازمعلق له دې شرط سره چې هدى خپل محل يعنى حرم ته ورسيږي نومناسب خوداوه چې حرم ته له رسيدلوڅخه وړاندې بالكل ددې خورک جائزنه واى ليكن څرنګه چې په تصدق على الفقراء كې يوقسم تقرب دى اوتقرب مقصوددى لهذادفقراؤخوړل جائزدى .

ف:امام شافعى رحمه الله فرمايې چې له داسې هدى څخه دصاحب هدى دفقيروملګروخورک هم ناجائزدى ولى چې نبى كريم ﷺ ناجيه اسلمى ﷺ ته فرمايلي وو ﴿لاتاكل انت ورفقتک منهاشيئا﴾ (ته اوستاملګري له دې

څخه هیڅ مه خورئ)، امام شافعي رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې حدیث محمول دی پردې چې دناجیه ﷺ رفقاء اغنیاء وو.

(۲۴۰)یعني صرف دم تطوع ،دم تمتع ،دم قران اودم نذرته قلاده وراچول مستحب دی ولی چې دادم قربت دي نوددي شهرت کول مناسب دی .له دی څخه علاوه دکفاراتو او احصاروغیره دم ته دي قلاده نه وراچوي ځکه چې په دي کې تستربهتردی ولی چې ددي سبب جنایت دی لهذا په دي کې عدم تشهیر مناسب دی.

ف: مصنف رحمه الله په لفظ بدنه سره دي ته اشاره وکړه چې قلاده اوبن اوغواته اچول مستحب ده پسه ته قلاده وراچول مستحب نه ده ولی چې پسه ته دقلادي وراچولو عادت نشته .دامام شافعي رحمه الله په نزد پسه ته هم قلاده وراچول مستحب ده لماروی عن عائشة رضي الله عنها قالت اهدی رسول الله ﷺ مرة الی البیت غنمافقلدها(یعني نبی کریم ﷺ یوځل بیت الله ته پسونه روان کړل نوددوئ په غاړوکې یې قلادي (غاړکۍ) واچولې )،امام شافعي رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې له دي یوځل څخه وروسته نبی کریم ﷺ اوصحابه کرامو رضي الله عنهم پسونوته قلاده وراچول ترک کړي وو نوکه مستحب وای نودوئ به نه پرېښودی.

## مَسَائِلُ مَنثُورَةٌ

### دمتفرقو مسائلو بیان

دمصنفینو عادت دی چې دوئ دکتاب په اخرکې له سابقه بابونو سره څه داسې نادري مسائل ذکرکوي کومې چې له کوم خاص باب سره مناسبت نه لري نو مصنف رحمه الله هم دکتاب الحج په اخرکې څه داسې مسائل ذکرکړي دي. بیاداسې مسائلوته کله دمسائلو منثوره عنوان ورکوي اوکله دمسائل متفرقه اوکله دمسائل شتی عنوان ورکوي مصنف رحمه الله په خپل کتاب کې دادري سره قسمه عنوانات استعمال کړي دي

(۲۴۱)وَلَوْ شَهِدُوا بِوُقُوفِهِمْ قَبْلَ يَوْمِهِ تُقْبَلُ وَبَعْدَهُ لَا (۲۴۲)وَلَوْ تَرَكَ الْجَمْرَةَ الْأُولَى فِي الْيَوْمِ الثَّانِي رَمَى الْكُلَّ أَوِ الْأُولَى فَقَطْ (۲۴۳)وَمَنْ أَوْجَبَ حَجًّا مَاشِيًا لَا يَرْكَبُ حَتَّى يَطُوفَ لِلرُّكْنِ (۲۴۴)وَلَوِ اشْتَرَى مُحْرِمَةً حَلَّلَهَا وَجَامَعَهَا

**ترجمه**: اوکه خلکو گواهي ورکړه چې دوئ وقوف عرفات کړی دی دعرفات له ورځې څخه وړاندي نوداگواهي به قبلیږي اودعرفات له ورځې څخه دوروسته گواهي به نه قبلیږي ،اوکه یې دجمره اولی رمی پرېښوده په یولسم تاریخ نوپوره رمی دي وکړي یاصرف اولنۍ ،اوچاچې واجب کړپرخپل ځان پیاده حج نوندي سوریږي ترڅو چې طواف رکن وکړي ،اوکه چا واخیسته محرمه مینځه نوهغه دي حلاله کړي اوله هغې سره دي جماع وکړي.

**تشریح**: (۲۴۱)که خلکو دعرفات له ورځې څخه وړاندي گواهي ورکړه چې حاجیانو وقوف عرفات له نهم ذی الحجه څخه وړاندي کړی دی نوددوئ گواهي به قبلول کیږي ولی چې تدارک ممکن دی په دي ډول چې خلک به دوهم ځل وقوف عرفات وکړي اوکه یې له نهم ذی الحجه څخه وروسته گواهي ورکړه مثلا داسې

ووايې چې خلګوپه لسم ذی الحجه وقوف عرفات کړی دی نوداګواهی به نه منل کيږي دقياس تقاضاخوداده چې دخلګوصحيح نه وي ولی چې وقوف عرفه عبادت دی کوم چې له زمان اومکان سره خاص دی لهذاله دي زمانې اومکان څخه بغيرصحيح نه دی .وجه داستحسان داده چې ده په نفی حج باندي ګواهی ده اوله خطاء څخه احترازناممکن دی اوتدارک متعذردی اوخلګوته اعاده حج په حکم کولوکې يېخې ډيرحرج لازميږي اوحرج شرعاًمدفوع دی نوواجب ده چې داشتباه پروخت دهغه دکافی والی حکم وکړل شي .

(۲۴۲)که چاديولسم ذی الحجه په ورځ ذجمره وسطی اوجمره ثالثه رمی خوورکړه مګردجمره اولی رمی يې پريښوده حال داچې په دي تاريخ ددريوسره جمرورمی کول واجب دي بيااکس په همدي ورځ درمی اعاده کوله نوکه ده ددريوواړه جمرودرمی په ترتيب سره اعاده وکړه نوډيره ښه ده ولی چې په دي ډول به دسنت ترتيب هم قائم شي ،اوکه ده صرف دجمره اولی رمی وکړه اودباقی دوجمرورمی يې پريښوده نوداهم جائزده ولی چې ده خواصل رمی په خپل وخت کې وکړه زيات ترزيات داوشول چې ده مسنون ترتيب پريښودی په کوم چې څه تاوان نه لازميږي .ديولسم ذی الحجه ذکراتفاقی دی ولی چې ددولسم تاريخ اوديارلسم تاريخ هم همداحکم دی البته په لسم تاريخ صرف دجمره عقبه رمی مشروع ده دنورو دوورمی مشروع نه ده .

ف :دامام شافعی رحمه الله په نزدڅرنګه چې په رمی جمرات کې ترتيب لازمي دی لهذاپه مذکوره بالاصورت کې ددريوواړو اعاده په ترتيب سره لازمي ده ولی چې نبی کريم ﷺ رمی په ترتيب سره کړي وه لهذاغيرمرتب رمی مشروع نه ده ،امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې دهري جمري رمی قربت مقصوده دی له بلې سره ددي هيڅ تعلق نشته لهذاديوې عدم اداء دبلې پراداء باندي اثرنه کوي .

(۲۴۳)که چاپياده حج کول پرځان نذرکړنوپرده واجب ده چې له طواف زيارت څخه وړاندي په سواري باندي سپورنه شي ولی چاچې کوم کارپرخپل ځان باندي علی وجه الکمال لازم کړنوهغه په ناقص طورسره په اداء کولونه اداء کيږي اوحج ته پياده تلل صفت کمال دی لهذاپه همدي صفت سره حج اداء کول واجب دی بياڅرنګه چې دحج افعال په طواف زيارت سره پوره کيږي لهذاپرده ترطواف زيارت پوري پياده تلل واجب دي .

ف :مصنف رحمه الله داييان ونه کوچې په مذکوره بالاصورت کې ناذرپياده تګ له کومه ځايه شروع کړي ،نوپه دي باره کې دعلماؤدري قوله دي يوقول دادی چې له ميقات څخه دي پياده روان شي ،دوهم قول دادی چې له کومه ځايه چې احرام تړلی دی ،دريم قول دادی چې له خپل کورڅخه پياده ولاړشي همداصحيح ده ولی چې په عرف کې له پياده حج کولوڅخه همدامراددی چې له کورڅخه پياده ولاړشي قال الشيخ عبدالحکيم الشهيد: واعلم ان ابتداء المشی لم يذکر محمدفی الاصل فلذااختلف المشائخ فيه علی ثلاثة اقوال قيل من بينه وهو الصحيح وهو الاصح کمافی الفتح و در المختار وغيرهما وقيل من الميقات وقيل من ای موضع احرم منه الراجح والمعول عليه وهو الصحيح الاول (هامش هداية: ۱/۲۸۳)

ف :له امام ابوحنيفه رحمه الله مروی ده چې پياده حج کول مکروه دی ،ددي وجه داليکل شوي ده چې په پياده حج کولوکې مشقت زيات دی دکوم په وجه سره چې په لاره کې له ملګروسره دبداخلاقی اوجنګ اوجنجال

خوف دی ،نو که داوجه نه وي نو بیاپیاده حج کول افضل دي ولی چې مروی ده چې نبی کریم ﷺ وفرمایل چې پیاده حج کونکې ته په هرقدم د حرم له نیکیانو څخه یوه نیکي حاصلیږي پوښتنه وشوه د حرم نیکې څه ده ؟ویې فرمایل یوه نیکې له اووسوه سره برابره ده .(کذافی الشامیة :۲/۱۵۵)

(۲۴۴)که چاداسې مینځه واخیسته کومه چې په حالت احرام کې ده یعنی دنفلی حج په احرام کې ،نو که له هغې سره جماع کول وغوښتل نو اول دي هغه حلاله کړي یعنی ویښتان دي ورېږي کړي له دي وروسته دي جماع وکړي ولی چې مشتری دبائع قائم مقام دی اوبائع لره دااختیاروو چې محرمه مینځه حلاله کړي اوجماع وکړي نوپه همدي شان به مشتری ته هم دااختیاروي .

## كِتَابُ النِّكَاحِ

### داکتاب دنکاح داحکامو په بیان کې دی

نکاح په لغت کې وطی ته ویل کیږي اوعقدنکاح ته مجازاً نکاح ویل کیږي ولی چې عقدنکاح دوطی سبب ذی . ځینې حضرات وایې چې نکاح په وطی اوتزوج کې مشترک ده .اصطلاحي تعریف یې مصنف رحمه الله داسې کړی دی هوعقدیردعلی ملک المتعة قصدایعنی نکاح هغه عقددی کوم چې وارديږي په ملک متعه باندي قصدا ،له ملک متعه څخه مراد له ښځې سره دوطی کولو ملکیت دی ،یردعلی ملک المتعة ،په معنی دیفید ملک المتعة ،یایثبت به ملک المتعة، نوخلاصه دا شوه چې نکاح دهغه عقدمخصوص نوم دی کوم چې قصداًملک متعه لره مفیدوي ،دقصداً په قیدسره احترازدی له هغه ملک متعه څخه کوم چې ضمنی حاصل وي مثلاچامینځه واخیسته نوده لره ملک متعه حاصل دی مګرځرنګه چې دلته مقصود دملک رقبه حصول دی ضمناملک متعه هم حاصل شولهذدي ته نکاح نه ویل کیږي ولی چې داملک متعه ضمناًحاصل شوی دی .

احکام نکاح یې له احکام عبادت څخه ځکه مؤخرکړل چې دنکاح نسبت له عباداتوسره نسبة المرکب من البسیط دی ولی چې په عبادت کې محض دعبادت اړخ دی حال داچې په نکاح کې دوه اړخه دي من وجه عبادت دی اومن وجه معامله ده اومرکب له بسیط څخه مؤخروي .په دي وجه یې احکام نکاح له احکام عبادت څخه موخرذکرکړل .نکاح من وجه عبادت ځکه ده چې په نکاح سره مشغولیدل ترمحض عبادت ته ځان فارغولو افضل دی ولی چې دنکاح په سبب انسان له زنا څخه ساتل کیږي. اونکاح من وجه معامله ځکه ده چې له یوه طرف څخه که څه هم بضعه ده کوم چې مال نه دی مګرله دوهم طرف څخه یعنی دبضعې عوض مال دی .اوپه دي کې ایجاب اوقبول اوګواهی لازمې ده .

(۱)هو عقدیرد علی تملک المتعة قصدا (۲)وهو سنة وعند التوقان واجب

**ترجمه** :نکاح هغه عقددی کوم چې وارديږي په ملک متعه باندي قصدا ،اوهغه سنت دی اودغلبه شهوت سره واجب دی:

**تشريح** :(۱)مصنف رحمه الله په خپل دي عبارت کې دنكاح اصطلاحي تعريف کړی دی كوم چې موږلوړ په تفصيل سره بيان کړ.(۲)نكاح داعتدال په صورت کې(حال داچې په مهر،نفقه اووطی باندي قدرت لري)سنت مؤكده دی. او عندالتوقان (يعنی دغلبه شهوت په وخت کې )واجب ده اوكه دزنايقين وي يعني بغيرد نكاح له زناڅخه خلاصيدل ممكن نه وونوفرض ده .دځينو حضراتوپه نزدفرض كفايه ده .البته كه په نكاح كولوكې دظلم اوجورخوف وونومكروه ده ولی چې نكاح دډيرومصالحولپاره مشروع شوي ده نوكه دظلم اوجورخوف وي نوهغه مصالح نه ښكاره كيږي .

**ف**:په هرحال نكاح كه فرض وي ،كه فرض كفايه وي ،كه واجب وي ،اوياسنت په نفلی عبادت سره ترمشغولتيا افضل ده ولی چې په غالبه احوالوكې سنت مؤكده ده اوسنت مؤكده له نوافلوڅخه اولی دی ،همدارانگه په ترک نكاح باندي وعيد وارد شوی دی حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايې چې نبی كريم ﷺ وفرمايل﴿ النكاح من سنتی فمن لم يعمل بسنتی فليس منی ﴾ (نكاح زماسنت دی څوک چې زماپه سنت باندي عمل ونه کړي هغه له ماڅخه نه دی)حال داچې دنوافلوپرترک باندي كوم وعيدنه ده راغلی .دامام شافعی رحمه الله په نزدنفل عبادت له نكاح څخه افضل دی ولی چې نكاح له معاملاتوڅخه ده حتی چې دكافر نكاح هم صحيح ده حال داچې نوافل عبادت دی په دي وجه سره نوافل اداء كول له نكاح كولوڅخه اولی دي .

**الحكمة** :اعلم ان الله سبحانه وتعالی قدخلق الانسان ليعمر هذه الارض التی خلق كل مافيهاله بدليل قوله تعالی (خلق لكم مافی الارض جميعا)اذاعرفت هذاعرفت ان بقاء الارض عامرة يستلزم وجودالانسان حتی تنتهی مدة الدنياوهذايستلزم التاسل وحفظ النوع الانسانی حتی لايكون خلق الارض ومافيهاعبثافنتج من هذاان عمار الكون متوقف علی وجودالانسان ووجوده متوقف علی وجودالنكاح(حكمة التشريع)

(۳)وَيَنْعَقِدُ بِإِيجَابٍ وَقَبُولٍ وُضِعَا لِلْمَاضِي أَوْ أَحَدُهُمَا (۴)وَإِنَّمَا يَصِحُّ بِلَفْظِ النِّكَاحِ وَالتَّزْوِيجِ وَمَا وُضِعَ لِتَمْلِيكِ الْعَيْنِ فِي الْحَالِ

**ترجمه** :اونكاح منعقده كيږي په ايجاب اوقبول سره كله چې دواړه وضع وي دتيري شوي زمانې دپاره ياله دواړوڅخه يو ،اونكاح صحيح كيږي په لفظ نكاح اوتزويج سره اوپه هغه الفاظوسره كوم چې فی الحال دتمليک عين لپاره موضوع وی .

**تشريح** :(۳)نكاح په ايجاب اوقبول سره منعقده كيږي ولی چې نكاح دنوروعقودوپه شان يوعقددی نوځرنگه چې دنوروعقودولپاره ايجاب اوقبول لازم دی همداشان دنكاح لپاره هم لازم دي .ايجاب هغه لفظ ته ويل كيږي كوم چې له احدالمتعاقدين څخه اولاصادريږي په دي وجه چې هغه په مخاطب باندي په نفی يااثبات کې ځواب واجبوي ياپه دي وجه چې هغه وجودعقدثابتوي كله چې له ده سره قبول متصل شي .اوكوم لفظ چې له احد المتعاقدين څخه ثانياصادرشي هغه ته قبول ويل كيږي.

په دي شرط چې ايجاب اوقبول دماضی په دولفظونوسره وي مثلازوج ووايې زوجتک اووجه په ځواب کې ووايې قبلت ياپه داسې دوولفظونوسره نكاح وكول شي په كوموكې چې يولفظ دماضی اودوهم دمستقبل لپاره وضع شوی وي مثلازوج ووايې زوجنی ابنتک(له خپلې لورسره زمانكاح وكړه) اومخاطب ووايې زوجتک(ماستانكاح وكړه ).اصلاپه دي کې دزوج قول زوجنی ايجاب نه دی بلكه ده مخاطب وكيل

جوړكړاوكله چې مخاطب زوجتک وويل نودااېجاب اوقبول دواړه دي اودنكاح په باب كې يوكس دطرفينو متولې جوړېداى شي يعنې يوكس دمتعاقدينوله طرف څخه وكيل كيداى شي.

**سوال**:سوال دادى چې نكاح خودانشاء له قبيلې څخه ده نودادماضى په صيغه سره څرنګه تعبيركيداى شي ؟

**ځواب**:په لغت كې داسې لفظ موجودنه دى كوم چې صراحة په انشاء يعنې حدوث امرفى الحال باندې دلالت وكړي ولى چې ماضى خوپه تيره شوي زمانه دلالت كوي اومضارع لكه څرنګه چې په حال دلالت كوي همداشان په استقبال هم دلالت كوي لهذاپه حال باندې ددې دلالت صريح نه دى نوصيغه ماضى كه څه هم داخبارلپاره وضع كړل شوي ده مګردضرورت نكاح دپوره كولولپاره شرعاًدانشاء معنى ته نقل كړل شوي ده .

## دخط اوټليفون په ذريعه سره دنكاح حكم

**ف**:دتحريرپه ذريعه سره هم نكاح كيداى شي مګرداضروري ده چې په طرفينوكې به ديوه له طرف څخه دنكاح دقبوليت په ژبه سره اظهاروي اوصرف له يوه طرف څخه به تحريروي ،همداراز دقبوليت اظهاربه ددووګواهانوپه مخ كې كيږي اوهغه تحريربه هم دې ګواهانوته وراوړول كيږي (جديدفقهى مسائل ۲۸۰/۱)

**ف**:دټليفون سيټان په څوقسمه دي مثلاً(۱)هغه ټليفون سيټ په كوم سره چې صرف ديوه كس اوازاوريدل كيداى سي. (۲)هغه ټليفون سيټ دكوم په ذريعه سره چې خبري كونكې ديوبل تصويرهم ليدى شي .(۳)هغه ټليفون سيټ دكوم په ذريعه سره چې دخبري كونكواوازحاضرين مجلس هم اوريدى شي .په اول الذكركې نكاح نه منعقده كيږي اوپه اخيرينوكې څرنګه چې دشهادت ټولې تقاضې پوره كيداى شي لهذانكاح صحيح ده لمافى الهندية :ومنهاسماع الشاهدين كلا همامعاهكذافى فتح القدير فلاينعقدبشهادة نائمين اذالم يسمعاكلام العاقدين الخ(ماخوذازحقانية :۳۱۲/۴.كذافى خيرالفتاوى :۳۷۰/۴)

(۴)نكاح دنكاح په لفظ سره منعقده كيږي مثلاًيووايې انكحنى ،بل ووايې انكحتک ، همداشان په لفظ تزويج سره منعقده كيږي مثلاًيوكس ووايې تزوجنى ،دوهم كس ووايې تزوجتک .بلكه په هغوټول الفاظو سره منعقده كيږي كوم الفاظ چې دفى الحال تمليک عين لپاره وضع وي مثلاًلفظ تمليک ، صدقه ،بيع اوشراء وغيره .

**ف**:دامام شافعى رحمه الله په نزدصرف دنكاح اوتزويج په لفظونوسره نكاح منعقده كيږي ولى چې نكاح . دتمليک وغيره الفاظو نه حقيقى معنى ده اونه مجازى معنى ده ،زموږپه نزدپه تمليک وغيره الفاظوسره هم نكاح منعقده كيږي ولى چې داالفاظ دنكاح په معنى كې دسببيت دعلاقې په وجه سره مجازامستعمل دي ولى چې لفظ تمليک ،بيع وشراء اوصدقه دملک رقبه په واسطه سره دمتعه په محل كې دملک متعه لپاره

سبب دي مثلاً كوم كس په مذكوره الفاظو سره د مينځې د رقبې مالک ګرځي نو د رقبې په ضمن كې د متعې هم مالک جوړيږي .

(٥) عِنْدَ حُرَّيْنِ اَوْ حُرٍّ وَحُرَّتَيْنِ عَاقِلَيْنِ بَالِغَيْنِ مُسْلِمَيْنِ (٦) وَلَوْ فَاسِقَيْنِ اَوْ مَحْدُوْدَيْنِ اَوْ اَعْمَيَيْنِ اَوْ ابْنَيِ الْعَاقِدَيْنِ (٧) وَصَحَّ تَزْوِيجُ مُسْلِمٍ ذِمِّيَّةً عِنْدَ ذِمِّيَّيْنِ (٨) وَمَنْ اَمَرَ رَجُلًا اَنْ يُزَوِّجَ صَغِيرَتَهُ فَزَوَّجَهَا عِنْدَ رَجُلٍ وَالْاَبُ حَاضِرٌ صَحَّ وَاِلَّا لَا

**ترجمه** :د دوو داسې ازادو نارينه وپه موجودوالی كې يا ديوه ازاد نارينه او دوو ازادو ښځو په موجودوالی كې كوم دواړه چې عاقل ،بالغ او مسلمان وي ،كه څه هم دواړه فاسق يا محدود يا ړانده يا دعاقدينو زامن وي ،او صحيح ده نكاح كول د مسلمان له ذميه ښځې سره د دوو ذميانو په موجودوالی كې ،او چاچې امر وكړ بل ته چې وكړي دده د كوچنۍ لور نو هغه نكاح وكړه د دې ديوه نارينه په موجودوالی كې او پلار يې هم حاضر وو نو نكاح صحيح ده كه نه نو نه ده صحيح .

**تشريح**:(٥)قوله عندحرين اى ينعقدالنكاح بحضرة رجلين حرين ،يعني د دو مسلمانانو نكاح منعقده كيږي د دو ګواهانو په موجودګي كې ﴿لقوله ﷺ لانكاح الابشهود﴾(له ګواهانو څخه بغير نكاح نشته ).او ګواه به هم داسې وي چې دوه ازاد نارينه يا يو ازاد نر او دوه ازادي ښځې به وي ،او دواړه به بالغ ،عاقل او مسلمان وي.د ګواهانو ازادوالی ځكه شرط دی چې شهادت له باب ولايت څخه دی (ولايت وايي تنفيذالقول على الغيرشاء الغيراوابى ،يعني خپل قول په غير باندي نافذول خواه كه دهغه خوښه وي او كه يې خوښه نه وي ،ته)او غلام ته په خپل ذات باندي د ولايت حق حاصل نه دی نو په غير به څرنګه ده لره ولايت حاصل شي. او د ګواهانو عاقل والی او بالغ والی ځكه شرط دی چې له عقل او بلوغ څخه بغير هم چا لره د ولايت حق نه شي حاصليدای لهذا كوم چې عاقل يا بالغ نه وي هغه ده شهادت اهل نه دی .او مسلمان والی په دې وجه شرط دی چې د كوم مسلمان په خلاف د كافر ګواهي معتبره نه ده .

**ف**:دامام شافعي رحمه الله په نزد نكاح صرف د دوو ازادو نارينه وپه ګواهي سره منعقده كيږي ديوه ازاد نارينه او دوو ازادو ښځو په ګواهي سره نكاح نه منعقده كيږي ولی چې د ښځو ګواهي دده په نزد صرف په اموالو او توابع اموالو كې معتبره ده .

**ف**:د دواړو ګواهانو معاً د متعاقدينو كلام اوريدل او وورباندي پوهيدل ضروري ده كمافى شرح التنوير:(حرين) او حرو حرتين (مكلفين سامعين قولهمامعا) (فاهمين) انه نكاح على الاصح (فاهمين) على المذهب.(ردالمحتار:٢/٢٦٩)

(٦)قوله ولوفاسقين اومحدودين اى لايشترط فى الشاهدين وصف العدالة حتى ينعقدبحضرة فاسقين ،يعني ګواهانو عدالت شرط نه دی بلكه كه دواړه ګواهان فاسق وي نو هم نكاح منعقده كيږي ولی چې فاسق لره په خپل ذات باندي ولايت حاصل دی د مومن والی په وجه سره نو د بل مسلمان په حق كې هم له اهل ولايت څخه دی ولی چې هغه هم دايمان په واسطه سره دده هم جنس دی .همداشان محدود فی القذف (كوم كس چې په كومه پاک لمنې ښځې يا نارينه باندي د زنا تهمت ولګوي بيا د ګواه ده پيښ كولو په وجه سره دی اتيا دوري ووهل شي هغه ته محدود فی القذف ويل كيږي )هم ګواه جوړيدای شي. همدشان دوه ړانده او دهمدي متعاقدينو زامن هم ګواه جوړيدی شي ولی چې دا ټول له اهل ولايت څخه دي او څوک چې اهل ولايت وي هغه اهل شهادت هم دی .

ف:البته مذكوره بالامحدودفی القذف وغيره تحمل شهادت خوكولی شي يعنی گواه جوړيدلی شي ليكن كه په كومه وجه سره په عدالت كې دگواهی وركولوضرورت پيش شونوگواهی نشي وركولی كمافی الشامية :اعلم ان النكاح له حكمان حكم الانعقادوحكم الاظهارفالاولماذكره والثاني انمايكون عندالتجاحدفلايقبل في الاظهارالاشهادة من تقبل شهادته في سائرالاحكام كمافي شرح الطحاوی فلذاانعقدبحضورالفاسقين والاعمين والمحدودين في قذف وان لم يتوبا وابني العاقدين وان لم يقبل اداؤهم عندالقاضي كانعقاده بحضرة العدوين (ردالمحتار:۲/۲۹۶)

(۷)دمسلمان نارينه له ذمی ښځې سره ددووذميانوپه موجودوالی كې نكاح كول دشيخينوپه نزدصحيح ده يعنی نكاح منعقده كيږي ولی چې نكاح كې دوه شيان دي يودزوج لپاره دملک بضع ثبوت دی ،اوبل دزوجه لپاره پرزوج دمهروجوب دی .ښكاره ده چې گواه پرداسې شي باندي وي كوم چې قابل احترام وي اوپه باب دنكاح كې قابل احترام بضع ده لزوم مال يعنی مهرقابل احترام نه دی ،نوپه باب النكاح كې گواه هم دخاوندلپاره دملک بضع په ثبوت باندي وي نه چې دښځې لپاره دمهرپه ثابتولو ، نوثابته شوه چې دذميانوگواهی دمسلمان زوج په حق كې ده اودذميه ښځې په خلاف ده اودمسلمان په حق كې دكافرگواهی مقبوله ده كه څه هم دمسلمان په خلاف مقبوله نه ده ،نوكه مسلمان نارينه په كومه وجه سره له نكاح څخه انكاروكړنودذميانوپه گواهی سره نكاح نه شي ثابتيدلی ولی چې دذمی گواهی دمسلمان پرخلاف معتبره نه ده.

ف:دامام زفراوامام محمدرحمهما الله تعالی په نزددذميانوپه گواهی سره دمسلمان نكاح نه منعقده كيږي ولی چې ذمي گواهان دزوجينوپه حق كې گواه دي اوقاعده داده چې كافردمسلمان په خلاف گواه نشي جوړيدلی،دشيخينوقول راجح دی كمافی شرح التنوير:(كماصح نكاح مسلم ذمية عندذميين)(ردالمحتار:۲/۲۹۷)

(۸)كه كوم كس دخپلې كوچنۍ لوردنكاح كولولپاره كوم نارينه وكيل جوړكړاوورته ويې ويل چې زمادي صغيري لورنكاح له يوچاسره وكړه اوس دي وكيل ددي صغيري نكاح وكړه ديوه گواه په موجودوالی كې نوكه دصغيري پلارهم موجودوو نونكاح صحيح ده ولی چې دوه گواهان موجوددي ځكه چې پلاردنكاح مباشرگڼل كيږي اووكيل دوهم گواه ولی چې په باب دنكاح كې حقوق نكاح دموكل طرف ته راجع كيږي وكيل خوسفيرمحض وي لهذادوهم گواه موجودشوپه دي وجه نكاح صحيح ده،اوكه دصغيري پلارموجودنه وو نونكاح نه صحيح كيږي ولی چې اوس دنكاح مباشروكيل دی دگواهی لپاره صرف يوگواه پاته شواوديوه په گواهی سره نكاح نه منعقده كيږي .

## فَصْلٌ فِي الْمُحَرَّمَاتِ

دافصل دمحرماتوپه بيان كې دی

دنكاح دجوازلپاره شرط دادى چې ښځه به محرمه نه وي .ددي شرط تفصيل دشعبواوانواع حرمت دكثرت په وجه سره په مستقل فصل كې بيان كړى دى .

**ف**:دكومې ښځې دچالپاره دمحرمه كيدلولپاره علماؤلس اسباب بيان كړي دي (۱)حرمت بسبب نسب لكه مور،خور وغيره،(۲)حرمت بسبب مصاهرت لكه دزوجې مورو غيره (۳)حرمت بسبب رضاع لكه رضاعى خور،موروغيره (۴)حرمت بسبب جمع بين الاختين (۵)حرمت بسبب تعلق حق الغيرلكه ديوچامنكوحه اومعتده (۶)حرمت بسبب ادخال الامة على الحرة يعنى په نكاح كې دازادي ښځې له موجودوالى سره سره مينځه په نكاح كول (۷)په دريو طلاقونوسره مطلقه كيدل (۸)په دين سماوى كې دعدم موافقت په وجه سره حرمت لكه مجوسيه ښځه (۹)دمنافى نكاح دموجودوالى په سبب سره حرمت لكه خپله مينځه (۱۰)له وړاندې څخه دڅلوروښځوپه نكاح كې دموجودوالى په وجه سره حرمت .

(۹)حرم تزوج أمه وبنته وإن بعدتا (۱۰)وأخته وبنتها وبنت أخيه (۱۱)وعمته وخالته (۱۲)وأم امرأته وبنتها إن دخل بها (۱۳)وامرأة أبيه وابنه وإن بعدا

**ترجمه** :حرام ده نكاح كول له خپلې مورسره اوله خپلې لورسره كه څه هم ليري وي ،اوله خپلې خورسره اوله خپلې خورځې سره اوله خپلې وريرې سره ،اوله خپلې عمې سره اوله خپلې خاله سره ،اوله خپلې خواښې سره اودخپلې ښځې له لورسره كه يې له ښځې سره وطى كړي وي ،اودخپل پلارله ښځې سره اودخپل زوى له ښځې سره كه څه هم ليري وي .

**تشريح** :له دې ځايه مصنف رحمه الله دمحرماتو بيان كوى .محرمات ټول څوارلس دى اوه نسبې دي اواوه سببې دي مصنف رحمه الله ټولې بيان كړي دي .(۹)دانسان له خپلې مورسره نكاح كول جائزنه ده همداشان له اناأودانا له مورسره، دمور دمورأودمورله اناسره وان علون نكاح كول جائزنه ده .همداشان پرنارينه باندې خپله لور،دلورلور اودخپل زوى لور وان سفلن حرام دي لقوله تعالى﴿ حرمت عليكم أمهاتكم وبناتكم الاية﴾(يعنى حرام كړل شوي دي په تاسې ستاسې موراني اوستاسې لوراني )،ځرنگه چې په لغت كې ام اصل اوبنت فرع ته ويل كيږي نوله همدې ايت څخه دجداتواوبنات الابن اوبنات البنت ټولو حرمت ثابتيږي .دمصنف رحمه الله په قول وان بعدتا سره هم جدات اوبنات الاولاد طرف ته اشاره ده .

(۱۰)قوله وأخته اى حرم تزوج اخته ،يعنى همداشان په نارينه باندې له خپلې خور(خواه كه سكه خوروى ياصرف په پلار ورسره شريكه وي اوياصرف په موروسره شريكه وي )اودخپل خورله لورانو (خورځې گانې )اودخپل وروله لورانو(وريرې گانې )سره نكاح كول حرام ده لقوله تعالى﴿ واخواتكم .....وبنات الاخ وبنات الاخت﴾(يعنى حرام كړل شوي دي په تاسې ستاسې خوندې .....اوخورځې گانې اووريرې گانې).

(۱۱)قوله وعمته وخالته اى وحرم تزوج عمته وخالته .يعنى په نارينه باندې له خپلې عمه اوخاله (لاب وام اولاحدهما) سره نكاح كول حرام ده لقوله تعالى﴿ وعمتكم وخالاتكم ﴾(يعنى حرام كړل شوى دي په تاسې باندې ستاسې عمې اوخالې گانې)، مذكوره بالاهغه محرماتې دي دكوموچې حرمت نسبې دى .

(۱۲)قوله وام امراته وبنتها اى وحرم تزوج ام امراته وبنتها ،يعنى په نارينه باندې دخپلې ښځې له مورسره نكاح كول حرام ده برابره خبره ده چې له ښځې سره يې وطى كړي وي يايې صرف عقدورسره كړى وي وطې يې نه

وي ورسره كړي لقوله تعالى﴿ وَأُمَّهَاتُ نِسَائِكُمْ﴾(يعنى حرام كړل شوي دي په تاسې باندي ستاسې دښځومندي ).همدا شان په نارينه باندي دخپلې ښځې له لورسره نكاح كول حرامه ده په دې شرط چې له ښځې سره به يې صحبت كړى وي په صرف عقدسره دښځې له لورسره نكاح نه حراميږي لقوله تعالى ﴿وربائبكم اللاتي في حجوركم من نسائكم اللتي دخلتم بهن فإن لم تكونوا دَخَلْتُم بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ ﴾(يعنى حرام كړل شوي دي په تاسې باندي ستاسې ربيبه نجوني كومې چې ستاسې په پالنه كې وي ستاسې له داسې ښځوڅخه له كوموسره چې تاسې صحبت كړى وي او كه تاسې له دې ښځوسره صحبت نه وو كړى نوپه تاسې څه گناه نشته ).نو دايت شريف په اخري حصه كې ددې خبري بيان دى چې كه تاسې دربيبې له مورسره صحبت نه وي كړى صرف عقدنكاح موكړى وي نوله ربيبه سره په نكاح كولو كې په تاسې څه گناه نشته .

ف:په دې ايت مباركه كې في حجوركم دشرط په طورسره نه دى بلكه په غيره كې دپالل كيدلو قيد دعادت په دول سره بيان شوى دى چې عادت دادى چې ربيبه دخپلې مورله دوهم خاوندسره پالل كيږي.

(۱۳)قوله وامراة ابيه اى وحرم تزوج امراة ابيه ،يعنى پرنارينه باندي دخپل پلاراونيكه له ښځې سره نكاح كول حرامه ده خواه كه پلاراونيكه دخول كړى وي اوكه يې نه وي كړى لقوله تعالى ﴿لَا تَنْكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ مِنَ النِّسَاءِ﴾(يعنى نكاح مه كوئ له هغوښځوسره له كوموسره چې ستاسې اباؤنكاح كړي وي ) داباؤلفظ اجدادوته هم شامل دى لهذ ادنيكه اوغورنيكه له ښځې سره هم نكاح كول حرامه ده. همدارازپه ايت شريف كې ددخول قيدنشته لهذاپه محض عقدكولوسره هم دپلاراونيكه ښځې حراميږي .همدا راز دخپل زوى اولمسى له ښځوسره نكاح حرامه ده لقوله تعالى ﴿ وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ ﴾ (يعنى په تاسې حرام كړل شوي دي ستاسې دزامنوښځې كوم چې ستاسې له پښت څخه دي )په ايت شريف كې لفظ دابناكم لمسيانواوكړوسيانوته هم شامل دى لهذادوئ له ښځوسره هم نكاح كول حرامه ده دمصنف ﷫ په قول وان بعدتاسره د نيكه ،غورنيكه اودلمسې اوكړوسې ښځوته اشاره ده چې له دوئ سره هم نكاح كول حرامه ده.

ف:په دې ايت مبارك كې داصلاب قيددمتبنى داعتباردساقطولولپاره دى چې دمتبنى له ښځې سره نكاح كول جائزده دانه ده مرادچې درضاعى زوى له ښځې سره نكاح جاكول جائزده كمافي الشامية:وذكرالاصلاب لاسقاط حليلة الابن المتبنى لالاحلال حليلة الابن رضاعافانهاتحرم كالنسب.(ردالمحتار:۲/۳۰۲)

**الغاز**:اى رجل له امرتان ارضعت احداهماصبياحرمت الاخرى عليه وحدها؟

**فقل**:رجل زوج ابنه الصغير امة فاعتقت فاختارت نفسهافتزوجت بآخروله زوجة فارضعت الصبى الذى كان زوج ضرتهالبن هذاالرجل حرمت ضرتهاعلي زوجهالانه صار ابنه من الرضاع ابنه من الرضاع فصارمتزوجاحليلة ابنه فلايجوز .(الاشباه والنظائر)

(۱۴)وَالْكُلِّ رَضَاعًا(۱۵)وَالْجَمْعِ بين الأُخْتَيْنِ نِكَاحًا وَوَطْئًا بِمِلْكِ الْيَمِينِ(۱۶)فَلَوْ تَزَوَّجَ أُخْتَ أَمَتِهِ الْمَوْطُوءَةِ لَمْ يَطَأْ وَاحِدَةً مِنْهُمَا حتى يَبِيعَهَا

**ترجمه**:اوحرامې دي داټولې رشتې دشيدوپه رشته سره هم ،اوددووخوندوجمع كول په نكاح كې ياپه وطى كې دملك يمين په جهت سره ،نوكه يې نكاح وكړه دخپلې موطوءه مينځې له خورسره نووطى دې نه كوي له يوي سره لاهم ترڅوچې خرڅه كړي مينځه .

**تشريح** :(۱۴)قوله والکل رضاعاای وحرم تزوج جميع من ذکرت من المحرمات من جهة الرضاع ،يعنی له دي څخه وړاندي چې دڅومره رشتوحرمت بسبب نسب يامصاهرة سره ذکرشوهغه ټولې رشتې درضاعت په سبب سره حرامې دي لقوله﴿ يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَايَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ ﴾(يعنی حراميږي درضاع په وجه سره کومې چې حراميږي په نسب سره).

(۱۵)قوله والجمع ای وحرم الجمع بين الاختين ،يعنی په نارينه باندي دوه نسبې يارضاعې خوندوپه نکاح کې جمع کول يادملک يمين په جهت سره دوطی لپاره جمع کول حرام دي په دي ډول چې له دووخوندوسره نکاح وکړي ياله يوي سره نکاح وکړي اودوهمه مينځه وي هغه دوطی لپاره واخلې يادواړه مينځې وي يوڅوک دواړه واخلې لقوله تعالی﴿ وَأَنْ تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ ﴾(يعنی په تاسې حرام کړل شوي ده داچې تاسې جمع کړی دوه خوندي )،دملک يمين په صورت کې دوطی لپاره قيدپه ځکه ولګاوو چې له وطی څخه بغيرپه ملک يمين کې جمع بين الاختين حرامه نه ده .

(۱۶)نوکه چادخپلې موطوٴه مينځې له خورسره نکاح وکړه نونکاح خوصحيح ده ولی چې عقد نکاح له اهل نکاح څخه صادرشواومحل نکاح ته منسوب دی په دي وجه سره نکاح صحيح ده ،ليکن ترڅوچې خپله موطوٴه مينځه خرڅه نه کړي يعنی له خپل ملک څخه يې ونه باسي په دوئ دواړوکې له يوي سره به هم صحبت نه کوي که نه نو ددوخوندوپه وطی کې جمع کول لازميږي کوم چې حرامه ده که څه هم يوه بطورنکاح ده اوبله بطورملک يمين ده .

**ف** :مصنف ﷫ که دحتی يبيعهاپرځای حتی يحرمهاعلی نفسه ويلی وای نوبهتربه وای ولی چې داعبارت دمينځې خرڅولو ،هبه کولواوازادولووغيره ټولوصورتونوته شامل دی حال داچې حتی يبيعها له خرڅولوڅخه علاوه نوروصورتونوته شامل نه دی.

(۱۷)وَلَوْتَزَوَّجَ أُخْتَيْنِ فِي عَقْدَيْنِ ولم يَدْرِ الْأُولَى فُرِّقَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمَا وَلَهُمَا نِصْفُ الْمَهْرِ (۱۸)وَبَيْنَ امْرَأَتَيْنِ أَيَّةٌ فُرِضَتْ ذَكَرًا حَرُمَ النِّكَاحُ

**ترجمه** :اوکه يې نکاح وکړه له دووخوندوسره په دوَوعقدوکې اواول نه وو معلوم تفريق به کول کيږي دده اوددوئ دواړوپه منځ کې اوددواړولپاره نصف مهردی ،اوصحيح نه دی جمع کول دداسې دووښځو(په نکاح کې )چې کومه يوه هم مذکرفرض کړل شي نوحرامې وي نکاح .

**تشريح** :(۱۷)که چاله دووخوندوسره عليحده عليحده نکاح وکړه اودانه وومعلوم چې په دوئ کې له کومې سره اول نکاح کړي ده نوقاضی به نارينه له دوئ دواړوڅخه عليحده کوي يعنی ددواړونکاح به ختمه کړي ولی چې په دوئ کې ديوي نکاح يقينانه ده شوي دکومې چې نکاح مؤخره وي مګرددي مؤخري دتعين لپاره هيڅ صورت نشته لهذادواړه به له يوه حکم لاندي داخليږي يعنی دواړه به له دي نارينه څخه جلاکوي ،بيابه په دوئ دواړوکې هريوي ته نصف مهرورکوي ولی چې قاعده داده چې کومه ښځه چې له صحبت څخه وړاندي جلاکړی شې هغه دنصف مهرمستحقه ګرځې ځکه چې دلته دنصف مهرمستحقه کومه يوه متعينه نه ده لهذاله دواړوڅخه به هري يوي ته به نصف مهرورکول کيږي ، همداحکم دهرهغودومحرموښځودی دکوموچې په يوه وخت په نکاح کې جمع کول جائزنه دی.

**ف**:مګرداهغه وخت دی چې په دوئ دواړوکې هريوه دادعوه وکړي چې زمانکاح وړاندي شوي ده اوله دواړوسره ګواه نه وي ،اوکه هغوئ وايي چې موږته معلومه نه ده چې کومه نکاح وړاندي شوي ده

نوددواړولپاره به دهيڅ شي حكم نه كيږي ولې چې مقضى له مجهول دى البته كه هغوئ دواړه په نصف مهرمتفقې شي نوددواړولپاره به دنصف مهرحكم كيږي .

(۱۸)قوله وبين امرأتين اية فرضت الخ اى وحرم الجمع بين امرأتين اية فرضت الخ ،مصنف رحمه الله قاعده كليه بيان كړې ده چې هرهغه دوه ښځې په نكاح كې جمع كول حرام دي چې په دوئ كې كه كومه يوه نارينه فرض كړاى شي نودي لره دوهمه حلاله نه وي لكه ښځه له خپلې عمه ياخاله وغيره سره ولې چې كه ښځه مذكرفرض كړې نودوهمه ددې عمه ده له كومې سره چې دده نكاح جائزنه ده اوكه عمه مذكرفرض كړې نودابنځه ددې وريره كيږي له كومې سره چې هم نكاح ناجائزده. شرط دادى چې له طرفينوځخه به نكاح جائزنه وي كه له يوه جانب ځخه جائزه وي نودداسې دووښځوجمع كول جائزده همداوجه ده چې ښځه اوددې دمخكنې خاوندلورجمع كول جائزده ولې چې كه دابنځه نارينه فرض كړاى شي نوپردې ددې دخاوندلورحرامه نه ده ولې چې هغه ددې ښځې په نسبت دپردي كس لورده هوكه دانجلې نارينه فرض كړې نوپردې دابنځه دامرأة الاب كيدلو په وجه سره حرامه ده .

ف:دامام زفرپه نزدداسې دووښځوجمع كول هم جائزنه دي له كوموځخه كه چيرته يوه نارينه فرض كړاى شي نودهغې بلې نكاح ددې لپاره جائزنه وي ليكن دوهمه كه مذكرفرض كړاى شي نوداولنۍ نكاح ددې لپاره حلاله وي ولې چې من وجه امتناع ثابته ده نواحتياط په همدې كې دى چې دوئ په نكاح كې جمع كول جائزنه وي .دجمهورودليل دالله تعالى ارشاد ﴿واحل لكم ماوراءذالكم﴾ دى ،همدارازمروى ده چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه ديوه كس لوراودهغه مخكنۍ ښځه په نكاح كې جمع كړې وي ،فتوى دجمهوروپرقول ده لمافى البحر:وقيدبقوله اية فرضت لانه جازنكاح احداهماعلى تقدير مثل المرأة وبنت زوجهااوامرأة ابنهافانه يجوز الجمع بينهماعندالائمة الاربعة وقدجمع عبدالله بن جعفربين زوجة علي وبنته ولم ينكر عليه احد(البحر الرائق:۳/۱۷۳)

(۱۹)وَالزِّنَا وَاللَّمْسُ وَالنَّظَرُ بِشَهْوَةٍ يُوجِبُ حُرْمَةَ الْمُصَاهَرَةِ(۲۰)وَحَرُمَ تَزَوُّجُ أُخْتِ مُعْتَدَّتِهِ(۲۱)وَأَمَتِهِ وَسَيِّدَتِهِ(۲۲)وَالْمَجُوسِيَّةِ وَالْوَثَنِيَّةِ(۲۳)وَحَلَّ تَزَوُّجُ الْكِتَابِيَّةِ(۲۴)وَالصَّابِئَةِ(۲۵)وَالْمُحْرِمَةِ وَلَوْ مُحْرِمًا(۲۶)وَالْأَمَةِ وَلَوْ كَانَتْ كِتَابِيَّةً(۲۷)وَالْحُرَّةِ عَلَى الْأَمَةِ لَا عَكْسُهُ(۲۸)وَلَوْ فِي عِدَّةِ الْحُرَّةِ

**ترجمه** :اوزنا ،مس كول ،اوپه شهوت سره كتل ثابتوي حرمت مصاهرة ،اوحرامه دنكاح كول دخپلې معتدې له خورسره، اوله خپلې مينځې سره اوله خپلې مالكې سره ،اوله مجوسيه سره اوله وثنيه سره ، اوحلاله ده نكاح كول له كتابيه سره ،اوله صابيه سره ،اوله محرمه سره ولوكه نارينه هم محرم وي ،اوله مينځې سره كه ځه هم كتابيه وي ،اوله ازادې ښځې سره دمينځې پرنكاح باندې نه ددې عكس ،كه ځه هم ازاده ښځه په عدة كې وي .

**تشريح** :(۱۹)كه كوم كس له كومې ښځې سره زناوكړه يانارينه ښځه په شهوت سره مس كړه يايې په شهوة سره ښځې دشرمگاه طرف ته وكتل نوپه دې دريوواړوصورتونوكې حرمت مصاهرة (دزوم والى دقرابت په وجه سره چې كوم حرمت ثابتيږي هغه ته حرمت مصاهرة ويل كيږي )ثابتيږي لهذاپردې كس ددې ښځې موراولورحراميږي اوپرښځه دده پلاراووى حراميږولې چې له حضرت ابن عمر رضي الله عنه ځخه روايت دى انه قال اذاجامع الرجل المرأة اوقبلهااولمسهابشهوة اونظرالى فرجهابشهوة حرمت على ابيه وابنه وحرمت عليه امهاوابنتها(كله چې نارينه له

ښځې سره زناوکړي يايې مچ کړي يايې په شهوة سره مس کړي يادې دفرج ته په شهوة سره وګوري نوهغه ښځه حراميږي ددې کس پرپلاراوددې پرزوی باندې او حراميږي په نارينه باندې ددې ښځې موراوددې لور).له موراولور،پلاراوزوی څخه مراداصول اوفروع دي يعنی پرزانی اومزنيه باندې ديوبل فروع اواصول حراميږي.

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزدپه زناسره حرمت مصاهرة نه ثابتيږي ولی چې زناحرامه ده اوحرمت مصاهرة يعنی دزومولی قرابت يونعمت دی اوفعل حرام دنعمت دحصول لپاره سبب نشي کيدای .امام شافعي رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې دحرمت مصاهرة اصل سبب ولددی زنانه ده اوپه ذات ولدکې کې څه معصيت نشته ،معصيت خودموراوپلارپه فعل کې دی لهذادولدپه سبب حرمت کيدلوکې څه قباحت نشته .(کذافی منحة الخالق علی هامش البحر الرائق :۳/۱۷۴)

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزدښځه په شهوة سره مس کول اوپه شهوة سره ورته کتل هم دحرمت مصاهرة لپاره سببونه نه دي په دي وجه چې دادوطی په معنی نه دي ولی چې وطی صوم اواحرام لره مفسدده اوغسل لره موجب ده حال داچې مس اونظرنه مفسد دي اونه موجب غسل دي لهذامس اونظردحرمت مصاهرة لپاره سبب هم نه دي .امام شافعي رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې داحتياط په وجه سره دواعی وطی ته دوطی په قائم مقام ګرځولوسره دوطی حکم ورکړل شوی دی لمافی البحر الرائق:واللمس والنظرسبب داع الی الوطء فيقام مقامه فی موضع الاحتياط کذافی الهداية(البحر الرائق:۳/۱۷۳)

(۲۰)که چاخپلې ښځې ته بائن طلاق ورکونوترڅوچې ددې عدة (عدة دښځې پر طلاق يادخاوندپرمرګ دماتم کولوزمانه ته ويل کيږي )تيره نه شي ددې له خورسره ددې کس نکاح کول جائزنه ده بلکه له هرهغه ښځې سره نکاح کول جائزنه ده کومه چې له مطلقه سره جمع کول ممنوع وي ولی چې تراوسه دنکاح اثر(يعنی عدة )باقی ده کومه چې ددې له خورسره له نکاح کولوڅخه مانع ده .

ف:دامام شافعي اوامام مالک رحمهما الله تعالی په نزدچې کومه ښځه دطلاق بائن ياطلقات ثلاثه عدت تيروي ددې له خورسره دمطلق نکاح کول جائز ده ولی چې دطلاق په وجه سره نکاح منقطع شوي ده همداوجه ده چې دحرمت له علم سره له خپلې دي مطلقې سره په وطی کونکې باندې حدواجب دی .داحنافودليل دادی چې پردې دصحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع ده چې له داسې ښځې سره نکاح کول جائزنه ده دکومې چې خوردهمدې کس په طلاق ورکولوسره عدة تيري وي ،ترکومه چې دشوافعو دليل دی چې نکاح منقطع شوي ده نوددې ځواب دادی چې له وطی څخه ماسوادنوروااحکامو په حق کې نکاح قائمه ده مثلادنفقه ،سکنی ،منع عن الخروج وغيره په حق کې نکاح قائمه ده .

(۲۱)قوله وامته وسيدته ای وحرم علی السيدتزوج امته وعلی العبدتزوج سيدته ،يعنی دمولی له خپلې مينځې سره نکاح کول اودغلام له خپلې مالکې سره نکاح کو ل جائزنه ده ولی چې دنکاح په وجه سره له متناکحينو څخه هريودڅه حقوقومالک جوړيږي مثلانارينه ته دوطی اودواعی وطی حق حاصليږي نودغلام له خپلې مالکې سره په نکاح کولوغلام مالک جوړيږي حال داچې غلام مملوک دی اوپه مالکيت او مملوکيت کې

منافات دی ،اوښځې ته دنفقې ،سکنی اومنع عن العزل حق حاصلیږي نودمولی له خپلې مینځې سره په نکاح کولوکې مملوکه مینځه مالکه جوړیږي حال داچې دمالکیت اومملوکیت په منځ کې منافات دی .

(۲۲)قوله والمجوسية ای وحرم تزوج المجوسية ،یعنی دمسلمان له مجوسیه یعنی له اتش پرستې ښځې سره نکاح کول جائزنه ده ولې چې مجوسیه له اهل کتاب څخه نه ده اونبی کریم ﷺ فرمایلي دي چې ﴿ سُنُّوا بِهِمْ سُنَّةَ أَهْلِ الْكِتَابِ غَيْرَ نَاكِحِي نِسَائِهِمْ وَلَا آكِلِي ذَبَائِحِهِمْ ﴾(یعنی له مجوسیانوسره داهل کتاب په شان چلند کوئ ماسواددوئ له ښځوسره له نکاح کولو او ددوئ دذبیحې له خوړلو)لهذاله مجوسی ښځې سره دمسلمان کس نکاح کول جائزنه ده ،قوله والوثنية ای وحرم تزوج الوثنية،یعنی دمسلمان کس له وثنیه یعنی بت پرستې ښځې سره هم نکاح کول جائزنه ده لقوله تعالی﴿وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّى يُؤْمِنَّ ﴾(یعنی نکاح مه کوئ له مشرکوخلکوسره ترڅوچې ایمان قبول نه کړي ).

(۲۳)مسلمان ته له کتابیه ښځې (کتابی هغه دی کوم چې په کوم نبی باندې ایمان لري اودکوم اسمانی کتاب دمنلواقرارکوي )سره نکاح کو ل جائز ده لقوله تعالی﴿ وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ ﴾(یعنی حلالې کړل شوي دي ستاسې لپاره له اهل کتاب څخه محصنې ښځې ).

## دنن صبااهل کتابوحکم

ف:دنن صبااهل کتابوپه باره کې حضرت تهانوی رحمه الله لیکي :لیکن په دې زمانه کې چې چاته نصاری ویل کیږي هغه اکثرپه قومې حیثیت سره نصاری دي په مذهبی حیثیت سره محض دهری اوسائنس پرست دي ددوئ لپاره داحکم دجوازنکاح نشته .فقط والله تعالی اعلم وعلمه اتم (امدادالفتاوی :۲۱۳/۲)

(۲۴)قوله الصابية ای وحل تزوج الصابية ،یعنی له صابیه ښځې سره نکاح کو ل حلال دي له صابیه ښځې سره دنکاح په جوازاوعدم جوازکې دامام ابوحنیفه رحمه الله اوصاحبینو رحمهما الله تعالی اختلاف دی .امام صاحب رحمه الله دجوازاو صاحبین رحمهما الله تعالی دعدم جوازقائل دي .په حقیقت کې دااختلاف دصابی په تفسیرکې دی .دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدصابی هغه دی کوم چې زبورمنې اودستوروصرف تعظیم کوي نواهل کتاب څخه دکیدلوپه وجه سره له دوئ سره نکاح جائزده . دصاحبینوپه نزدصابی هغه دی کوم چې دستوروعبادت کوي اوکوم کتاب نه منې نوځرنګه چې دوئ اهل کتاب نه دي بلکه دعبدة الاوثاون په شان دي لهذاله دوئ سره نکاح کول جائزنه دي .نوکه داثابته شې چې واقعی هغوئ دستوروصرف تعظیم کوي نوبالاتفاق له صابیه ښځې سره نکاح جائزنه ده اوکه ثابته شې هغوئ دستوروعبادت کوي نوبالاتفاق له صابیه ښځې سره نکاح جائزنه ده ،کذافی مجمع الانهر :واختلف فی تفسیرها فمن قال :هم قوم من النصاری یقرؤن الکتاب ویعظمون الکواکب کتعظیم المسلمین للکعبة فلاخلاف فی صحة النکاح ومن قال هم یعبدونها کعبادة الاوثان فلاخلاف فی عدم صحته (مجمع الانهر:۳۸۳/۱)

(۲۵) قوله والمحرمة اى وحل تزوج المحرمة ،يعنى كومه ښځه چې په حالت احرام كې وي (خواه كه دحج احرام وي كه دعمري احرام وي) له هغې سره نكاح كول جائزده كه څه هم نارينه هم په محرم وي ولى چې نبى كريم ﷺ داحرام په حالت كې له حضرت ميمونه ﷺ سره نكاح كړي وه .

ف: دامام شافعى رحمه الله په نزدله محرمې ښځې سره نكاح كول جائزنه دي لقوله ﷺ ﴿ لَا يَنْكِحُ الْمُحْرِمُ وَلَا يُنْكِحُ﴾ (نكاح دي نه كوي محرم اونه دبل نكاح وركوي)،زموږدليل دحضرت ابن عباس ﷺ حديث دى ﴿قال تَزَوَّجَ مَيْمُونَةَ وهو مُحْرِمٌ ﴾(يعنى نبى كريم ﷺ له حضرت ميمونه ﷺ سره داحرام په حالت كې نكاح وكړه ) امام شافعى رحمه الله ته ځواب وركړل شوى دى چې ستاپيښ كړه حديث په نهى تنزيهى باندي محمول دى يعنى دمحرم لپاره نكاح كول يا وركول مناسب نه دي ،ياپه حديث شريف كې له نكاح څخه وطى مراد ده چې محرم دي به حالت احرام كې وطى نه كوي او محرمه ښځه دي به وطى كولوتمكين نه وركوي.

(۲۶) قوله وامة اى حل تزوج امة غيره ،يعنى دغيرله مينځې سره نكاح كول جائزده خواه كه مسلمانه وي اوكه كتابيه وي لقوله تعالى ﴿ فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ مَثْنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ ﴾ (يعنى نكاوكړئ له هغوښځوسره چې تاسې ته ښه لګي له دووډدووسره له دردرسره له څلورڅلوروسره )او ﴿ وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَلِكُمْ ﴾ كې له مطلق نساء سره نكاح كول عام دي خواه كه ازاده ښځه وي اوكه مينځه وي مسلمانه وي كه كتابيه وي .

ف: دامام شافعى رحمه الله په نزدله كتابيه مينځې سره نكاح كول جائزنه دي ولى چې له مينځې سره نكاح كول ضرورة جائزشوي ده اوكوم شى چې ضرورة ثابت وي هغه بقدرضرورت ثابت وي اوضرورت له يوي مسلمانې مينځې سره په نكاح كولوپوره كيږي لهذاله كتابيه سره دنكاح كولوهيڅ ضرورت نشته ،امام شافعى رحمه الله ته ځواب وركړل شوى دى چې په مذكوره بالاايت كې لفظ دنساء ذكرشوى دى دالفظ لكه څرنګه چې ازادي ښځې ته شامل دى همداشان منكوحه مينځې ته هم شامل دى لهذادعددپه باره كې دمينځې هم هغه حكم دى كوم چې دازادي ښځې دى .

(۲۷) قوله والحرة على الامة اى وحل تزوج الحرة على الامة ،يعنى دچاپه نكاح كې چې مينځه موجوده وي دهغه له ازادي ښځې سره نكاح كول جائزده لقوله ﷺ ﴿ وتنكح الحرة على الامة ﴾ (يعنى له حرې سره نكاح كيداى شي دباندي دموجود والى په وخت كې)،قوله ولاعكسه اى لايحل نكاح الامة على الحرة ،دمذكوره بالاصورت عكس جائزنه دى يعنى كه له وړاندي څخه ازاده ښځه دچاپه نكاح كې وي نوله مينځې سره نكاح جائزنه ده لقوله ﷺ ﴿ لَا تُنْكَحُ الْأَمَةُ عَلَى الْحُرَّةِ ﴾ (يعنى دازادي ښځې په موجودوالى كې له مينځې سره نكاح نشي كيداى ).

ف: دامام شافعى رحمه الله په نزدغلام لره مذكوره بالاصورت جائزدى ،امام مالك رحمه الله فرمايي دازادي ښځې په رضامندي له مينځې سره نكاح كول جائزده ،والحجة عليهما ماروينا.

(۲۸) قوله ولوفى عدة الحرة اى لاتجوز الامة على الحرة ولوكان فى عدة الحرة ،يعنى كه چاچيلې ازادي ښځې ته طلاق وركړ اوهغه په عدة كې وه نوهم دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدله مينځې سره نكاح كول جائزنه دي ترڅوچې دازادي ښځې عدة پوره نشي ولى چې دعدة په دوران كې هم نكاح من جه باقى ده لهذاداصورت

هم دلاتنكح الامة على الحرة په ممانعت كې داخل دى .صاحبين فرمايي چې كه ازاده ښځه د طلاق بائن عده تيروي نو بيا د عدة په دوران كې له مينځې سره نكاح كول جائزده .

ف: احتياط دامام ابو حنيفه رحمه الله په قول كې دى لمافي مجمع الانهر: لايحل له ان يتزوج في عدتها امة عند الامام لان النكاح باق من وجه فالاحتياط المنع كمالم يجز نكاح اختها في عدتها (مجمع الانهر: ١/٣٨٧)

(۲۹) وَأَرْبَع من الحرائر وَالإِمَاءِ فقط (۳۰) وَاثنتين لِلْعَبْدِ (۳۱) وَحُبلى من زِنًا لامن غَيره (۳۲) وَالمَوْطُوءَةِ بِمِلْك اَو زِنًا (۳۳) وَالمضمومة إِلَى مُحَرَّمَة وَالمسمى لها

ترجمه: او له څلورو ازادو ښځو سره (نكاح جائزده) يا څلورو مينځو سره فقط ، او له دووسره د غلام د پاره ، او له زنا څخه له حاملې سره نه د هغې له غير سره ، او له موطوءه سره بسبب ملك يا زنا ، او له هغې سره چې جمع كړل شوى وي له محرمې سره او مهرددې لپاره دى .

تشريح: (۲۹) قوله اوربع من الحرالرو الاماء فقط اى وحل للزوج اربع نسوة من الحرائر والاماء فقط ، يعنى د احنافو په نزد ازاد كس په يو وخت له څلورو ښځو سره نكاح كولى شي خوا څلورسره ازادي وي يا څلورسره مينځې وي ، يا څينې ازادي وي يا څينې مينځې وي ، له څلورو څخه له زياتو سره نكاح جائزنه ده .دامام شافعي رحمه الله په نزد كه له مينځې سره نكاح كول وغواړي نو صرف له يوې مينځې سره نكاح كولى شي له يوې څخه له زائد سره يې نشي كولى .زموږ دليل ارشاد بارى تعالى دى ﴿ فَانكِحوا ما طَابَ لَكُم مِنَ النِّسَاءِ مَثنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ ﴾ (يعنى نكاو كړئ له هغو ښځوسره چې تاسې ته ښه لګي له دوو دوو سره له دردرو سره له څلورو څلوروسره ) دا ايت په بيان عدد كې نص دى او د عدد صراحت زيادت لره مانع دى ، همدا راز په دې ايت مبارك كې لفظ د نساء ذكر دى دالفظ لكه څرنګه چې ازادو ښځو ته شامل دى همدا شان مينځو ته هم شامل دى .

(۳۰) قوله ولثنين للعبداى وحل لزوج لثنين من الحرائرو الاماء للعبد ، يعين د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد غلام لره له دو ښځوسره نكاح كو ل جائزده له دوو څخه له زياتو سره جائزنه ده .حال داچې د امام مالك رحمه الله په نزد غلام لره هم له څلورو ښځو سره نكاح كول جائزده .زموږ دليل دادى چې رقيت بالاتفاق د نعمتونو تنصيف كوي ، او له ښځو سره نكاح كو ل هم د الله تعالى له طرف څخه يو نعمت دى لهذا رقيت په دې نعمت كې هم تنصيف كوي نو كله چې ازاد كس لره څلور ښځې جائزدي نو د غلام لپاره به دوه جائزي وي .

(۳۱) قوله وحبلى من زنالامن غيره اى يحل لزوج حبلى من زنا ، يعنى كه چاله داسې ښځې سره نكاح وكړه كومه چې له زنا څخه حامله وي نو د طرفينو په نزد دانكاح جائزده ، د طرفينو دليل دادى چې ﴿ وَأُحِلَّ لَكُم مَا وَرَاءَ ذَلِكُم ﴾ حامله من زناته هم شامل دى ولى چې د محرماتو په بيان كې حامله من الزنانه ده ذكر شوي .البته طرفين فرمايي چې له حامله من الزناسره به وطى نه كوي ترڅو چې دضع حمل وشي لقوله ﷺ ﴿ من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فلا يسقين ماءه زرع غيره ﴾ (يعنى كوم شخص چې پر الله او د اخرت پرورځې ايمان لري هغه دې په خپلو اوبو سره د بل چاكښت او به نه كړي ) يعنى له كومې بلې حاملې سره دې وطى نه كوي .

ف: د امام ابو يوسف رحمه الله په نزد له حامله من الزناسره نكاح كو ل فاسده ده ولى چې حمل كه ثابت النسب وي نو د احترام حمل په وجه سره نكاح ناجائزه ده او حمل كه له زنا څخه وي نو هغه هم محترم دى ولى چې حمل خو څه جنايت نه دى كړى جنايت خو دزاني او مزنيه له طرف څخه دى لهذاله حامله من الزناسره هم نكاح

جائزه نه ده .امام ابو یوسف رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې موږ دانه منو چې فسادنکاح داحترام حمل په وجه سره دی بلکه دصاحب ماء په وجه سره دی او صاحب ماء دلته زانی دی کوم چې قابل احترام نه دی.

ف :دطرفینو قول راجح دی لمافي الهندية: وقال ابوحنيفة ومحمد يجوز ان يتزوج امراة حاملا من الزنا ولا يطوها حتى تضع وقال ابو يوسف لا يصح والفتوى على قولهما كذافي المحيط (هنديه: ١/ ٢٨٠)

ف :دا بايد يادوساتل شي چې مذکوره بالا اختلاف دغيرزاني په حق کې دی دزاني په حق کې نشته ،نوکه زاني له خپلې مزنيې سره نکاح وکړه نو بالاتفاق دانکاح صحيح ده او وطی هم کولی شي لمافي البحر الرائق :امالتزوج الزاني لها فجائز اتفاقا وتستحق النفقة عندالكل ويحل وطوها عندالكل كمافي النهاية (البحر الرائق: ٣/ ١٧٧)

قوله لا من غيره اى لا يحل تزوج حبلى من غيرزنا ،يعنی که کومه ښځه له زنی څخه حامله نه وه بلکه له خپل زوج څخه حامله وه نو داسې عورت څرنګه چې معتده الغير ده لهذا له دې سره نکاح کول بالاتفاق جائزنه ده لقوله تعالى ﴿ ولا تعزموا عقدة النكاح حتى يبلغ الكتاب اجله ﴾ (يعنی اراده مه کوئ دنکاح ترڅوچې خپل مقرر عدة انتهاء ته ونه رسيږي ).

(٣٢)قوله والموطوءة بملك اى وحل تزوج الموطوءة بملك ،يعنی که که چا له خپلې مينځې سره وطی وکړه بيايې کوم بل کس ته په نکاح وکړه نوله استبراء رحم څخه وړاندې ددې نکاح جائزه ده ولې چې دمينځه دمولی لپاره فراش ضعيف دی ولې چې که دمينځې بچی پيداشونو دمولی په صرف انکارسره دبچې نسب منتفي کيږي دلعان ضرورت نشته دنکاح له صحت څخه چې کوم مانع وو کله چې مينځه دمولی لپاره فراش ضعيف وګڼل شونو دنکاح دصحت لپاره هيڅ مانع پاتې نه شو.

ف : البته له نکاح څخه وړاندې دصحيح قول مطابق په مولی باندې استبراء کول واجب ده ترڅودمولی خپلې اوبه محفوظې شي كمافي الشامية :(قوله بل سيدها)اى بل يستبرئها سيدها وجوبا في الصحيح واليه مال السرخسي (ردالمحتار:٢/ ٣١٧)

ف :له نکاح کيدلو څخه وروسته له استبراء څخه وړاندې دشيخينو په نزدخاوندلره وطی کول صحيح دي ولې چې دشريعت له طرفه دجوازنکاح حکم کول درحم دفارغ والی علامه ده ولې چې نکاح په هغه وخت کې مشروع کړل شوي ده چې رحم فارغ وي اواوس چې کله رحم فارغ دی نوداستبراء ضرورت نشته .حال داچې امام محمد رحمه الله فرمايي :زما په نزدادا ښه خبره نه ده يعنی استبراء واجب ده ولې چې دمولی په اوبو سره دمينځې درحم دمشغول والی احتمال دی ،فقيه ابو الليث فرمايي چې دامام محمد رحمه الله قول اقرب الی الاحتياط دی .(كذافي الهنديه: ١/ ٢٨٠)

قوله اوزنا اى حل تزوج الموطوءة بالوطي زنا ،يعنی که چاکومه ښځه دزناکولوپه حال کې وليدله بيايې له هغې سره نکاح وکړه نودشيخينو په نزددانکاح جائزده اودې کس لره له استبراء څخه وړاندې له دې ښځې سره وطی کول جائزده .حال داچې امام محمد رحمه الله فرمايي دازماخوښه نه ده .دفريقينوهغه دلائل هغه دي کوم چې وړاندې ذکرشول.

(٣٣)قوله والمضمومة الى محرمة اى حل تزوج المراة المضمومة الى امراة محرمة ،يعنی که چاپه يوه عقدکې له دوو ښځوسره نکاح وکړه په دوئ کې يوه دده لپاره حلاله وه اوبله دده لپاره حلاله نه وه په دې وجه چې دده

محرمه وه یامشرکه وه یادکوم بل خاوند ښځه وه نو کومه چې حلاله ده دهغې نکاح صحیح ده او کومه چې حرامه ده دهغې نکاح باطله ده ولی چې بطلان بقدر مبطل وي اودلته وجه دبطلان صرف په یوه کې شته لهذا دهغې بلې نکاح صحیح ده ،بیا دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد ټول مقرر شوی مهر دهغې ښځې دی دکومې چې نکاح حلاله ده ولی چې محرمه (کومه ښځه چې پرده چې حرامه ده) دمحللې (کومه ښځه چې ده ته حلاله ده) مزاحم نشي جوړیدلی لهذا ټول مهر به دمحللې وي .

ف: صاحبینو په نزد به مهر مسمی ددواړو په مهر مثل باندي تقسیمیږي ولی چې مهر مسمی یې ددواړو دبضع مقابلې کړ خولی دی لهذا په دواړو به تقسیمیږي بیا چې دکومې نکاح صحیح وه دهغې مهر لازم دی او دکومې نکاح چې صحیح نه وه دهغې مهر لازم نه دی ،فتوی دامام ابوحنیفه رحمه الله پر قول ده لمافی الهندیة: والمسمی کله للمحللة قال فی المبسوط وهو الاصح علی قول ابی حنیفة هکذا فی القدیر (هندیه: ۱/۲۷۹) وقال ابن نجیم المصری: فترجح قوله علی قولهما. (البحر الرائق: ۳/۱۷۹)

## دنکاح موقت اومتعي بیان

(۳۴) وَبَطَلَ نِكَاحُ الْمُتْعَةِ وَالْمُؤَقَّتُ (۳۵) وَلَهُ وَطْءُ امْرَأَةٍ ادَّعَتْ عَلَيْهِ أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا وَقَضَى بِنِكَاحِهَا بِبَيِّنَةٍ وَلَمْ يَكُنْ تَزَوَّجَهَا

**ترجمه**: او باطله ده نکاح متعه او نکاح موقته ،او نارینه لره جائز ده وطی کول له هغې ښځې سره کومې چې دعوه وکړه پر دي نارینه چې ده له ما سره نکاح کړی ده او فیصله وکول شوه ددي دنکاح پر ګواهانو حال دا چې له دي سره یې نکاح نه وه کړي .

**تشریح**: (۳۴) نکاح متعه باتفاق الائمه باطله ده ،نکاح متعه داده چې کوم کس کومې ښځې ته ووایې چې زه به تاسره ترد و مرمدي پوري نفع اخلم او ښځه دا قبول کړي .په دي عقد متعه کې نه دلفظ نکاح ذکروي او نه دګواهانو موجود والی ضروري وي ،دنکاح متعه په بطلان باندي دامت اجماع ده .متعه په اول کې حلاله وه دخیبر په ورځ نبی کریم ﷺ دکورنیو خروغوښه او متعه حرامه کړه بیا دفتح مکې په موقع تر درېو ورځو پوري حلاله کړل شوه له دي ځخه وروسته دهیمشه لپاره حرامه شوه ،مروی ده چې حضرت ابن عباس رضی الله عنه متعه حلاله ګڼله اهل یمن و الاهم دده متابعت وکړ ،نن صبا په امت کې صرف اهل تشیع ددي قائل دي ،جمهور امت متعه حرامه ګڼي ولی چې حضرت علی رضی الله عنه او اکثر صحابه کرام رضی الله عنهم دمتعي له حلالوالی ځخه انکار کاوو لحدیث سبرة الجهنی رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ نهی عن المتعة وقال الا انها حرام من یومکم هذا الی یوم القیامة ومن کان اعطی شیئا فلا یاخذه، (سبره الجهنی رضی الله عنه فرمایې چې رسول الله ﷺ له متعي ځخه منع وفرمایله او ویې فرمایل: چې خبردار! بې شکه متعه له نن ورځې ځخه بیا تر دقیامت تر ورځې پوري حرامه ده او چا چې دمتعي په عوض کې ښځوته ځه ورکړي وي هغوئ دي هغه واپس نه اخلې )، همدارنګه مروی ده چې حضرت ابن عباس رضی الله عنه هم وروسته له خپلې فتوی ځخه رجوع کړي وه ولی چې حضرت علی رضی الله عنه ده ته وفرمایل: انک رجل تائه نهانا رسول الله ﷺ عن متعة النساء یوم خیبر (ای ابن عباس ته له لاري ځخه اوښتی یې نبی کریم ﷺ منع کړي ده دښځوله متعي ځخه دخیبر په ورځ ).

همداشان نكاح موقت هم باطله ده .دنكاح موقت صورت دادى چې كوم كس له كومې ښځې سره باقاعده دګواهانوپه حضوركې نكاح وكړي مګرنكاح ابدى نه وي بلكه دمحدودي مدي لپاره وي مثلاً دلسوورځويايوې مياشتې لپاره وي. دنكاح موقتې دبطلان وجه داده چې په دي كې هم متعې معنى پرته ده ولى چې دنكاح موقت مطلب هم همدادى چې څوورځې نفع اخلم ،همداراز په نكاح موقت سره دنكاح مقاصدنه حاصليږي لهذادنكاح ابدى والى شرط دى .

**ف**:دامام زفر رحمه الله په نزدنكاح موقته صحيح اولازمه ده ولى چې نكاح په شروط فاسده سره نه باطليږي دامام زفر رحمه الله قول راجح دى اودامام زفر رحمه الله دقول مطلب دادى چې دانكاح اوس ابدى اولازمه ده توقيت باطل دى .

(۳۵)كه كومې ښځې په كوم كس باندي په درواغوسره دعوى وكړه چې دازماخاوندى خاوند انكاروكړحال داچې په حقيقت كې هم دي كس له دى ښځې سره نكاح نه وكړي بيادي ښځې په دي دعوى باندي ددرواغوشاهدان تيركړل قاضى ددي ظاهري شهادت په وجه ددي ښځې په حق كې فيصله وكړه يعنى ددواړوپه منځ كې يې دنكاح فيصله وكړه نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددانكاح ظاهرا اوباطنادواړه قسمه نافذه ده ولى چې دقاضى په حقيقت الحال باندي خبريدل متعذر دى دظاهرحال په ليدلوسره دقاضى په نزدصادق دي اودګواهانوصادق والى حجت دى اودفيصلې بنيادپه حجت باندي وي لهذادحجت دموجودوالى په وجه سره فيصله نافذيږي .ظاهري نفاذدادى چې حكم دنكاح نافذيږي يعنى دښځې دپاره نفقه ،قسم وغيره واجبيږي اوباطنى نفاذدادى چې دي كس لره له دي ښځې سره وطى كول فى ماينه وبين الله جائزده.

**ف**:دامام محمداوامام شافعى په نزدظاهرانافذه ده اوباطنانانافذه نه ده دامام ابويوسف هم اخرى قول همدادى ولى چې ګواه درواغجن دي اوقاضى په حجة كې غلطى وكړه اوخطاء فى الحجة دباطنى نفاذلپاره مانع ده ،فقيه ابوالليث سمرقندي دصاحبينوپرقول فتوى وركړي ده لمافى البحرالرائق وذكرالفقيه ابوالليث ان الفتوى على قولهمافى اصل المسالةاعلى عدم النفاذباطنا(البحر الرائق:۳/۱۹۱)

## باب الأولياء والأكفاء

دا باب داولياواواكفاء په بيان كې دى

اولياء دولى جمع ده ولى ماخوذدى له ولايت څخه اوولايت تنفيذالامرعلى الغيرشاء اوابى (يعنى په غيرحكم نافذول خواه كه يې خوښه وي اوكه يې نه وي خوښه )ته ويل كيږي اواكفاء دكفوجمع ده په معنى دمثل ،نظير،مساوى ،همسر.

كله چې مصنف رحمه الله دمحرماتوله بيان څخه فارغ شونواوس داولياؤاواكفاؤاحكام بيانوي په دواړوبابونوكې مناسبت دادى لكه څرنګه چې دښځې محلله والى دنكاح دجوازلپاره شرط دى همدا شان دځينوائمه وپه نزددجوازنكاح لپاره دولى اوكفوموجودوالى هم شرط دى فرق دومره دى چې دښځې محلله

والي دجوازنكاح لپاره بالاتفاق شرط دى حال داچې دولي اوكفوشرط والي دجوازدنكاح لپاره مختلف فيه دى ځكه يې مؤخركو.

(۳۶)نفذنكاح حرّة مكلّفة بلاولي(۳۷)ولاتجبربكربالغة على النكاح(۳۸)فان استأذنها الولي فسكتت اوضحكت اوبكت(۳۹)اوزوّجها فبلغها الخبرفسكتت فهواذن(۴۰)فان استأذنها غيرالولي فلابدّمن القول(۴۱)كالثيّب

**ترجمه**:نافذيږي نكاح دازادي عاقلې بالغې ښځې دولي له اجازې څخه بغير،اونه به مجبوره كيږي بالغه باكره په نكاح باندي،نوكه يې اجازه وغوښته له دي څخه ولي اوداخاموشه شوه يايې وخندل يايې وژړل ،يايې داپه نكاح وركړه بيادي ته خبرورسيدى اوداخاموشه شوه نوداجازت دى،اوكه اجازه وغوښته له دي څخه له ولي ماسوابل چانوضروري ده په ژبه سره وينا،دثيبه په شان.

**تشريح**:(۳۶)دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددحره،عاقله،بالغه ښځې نكاح ددي په خوښه سره دولي له انعقاداواجازت څخه بغيرهم منعقده كيږي خواه كه عقدخپله ښځه وكړي يايې په وكيل وكړي خواه كه ښځه باكره وي اوكه ثيبه وي ولي چې داخالص په خپل حق كې تصرف كوي اوداتصرف اهل هم ده همدا وجه ده چې داپه خپل مال كې تصرف كولى شي.

**ف**:امام ابويوسف رحمه الله په پيل كې دولي له اجازت څخه بغيرد انعقادنكاح قائل نه وو وروسته يې جائزه وبلله په دي شرط چې په كفوكې وي وروسته يې بيامطلقا دجوازطرف ته رجوع وكړه،دامام محمد رحمه الله په نزدنكاح منعقده كيږي مگر دولي تراجازي به موقوفه وي ليكن مروى ده چې امام محمد رحمه الله هم دشيخينودقول طرف ته رجوع كړي ده.(كذافي البحرالرائق:۱۹۴/۳)

**ف**:دنورائمه ثلاثه ويه نزددولي له اجازي څخه بغيردښځې نكاح كول جائزنه ده هغوئ په عبارات النساء سره دانعقادنكاح قائل نه دي ولي چې له حضرت عائشه رضي الله عنها څخه روايت دى چې نبى كريم ﷺ وفرمايل﴿ ايما امرأة نكحت نفسها بغير اذن وليها فنكاحها باطل ﴾(يعنى كومه يوه ښځه چې هم دخپل ولي له اجازت څخه بغيرنكاح وكړي نودهغې نكاح باطله ده)،مگردوئ ته ځواب وركړل شوى دى چې دحضرت عائشې رضي الله عنها حديث قابل استدلال نه دى ولي چې په خپله حضرت عائشې رضي الله عنها دحضرت عبدالرحمن بن ابى بكر رضي الله عنه په نه موجودوالي كې دهغه دلورنكاح كړى وه اوقاعده ده چې كله كوم راوى دخپل روايت پرخلاف عمل وكړي نوهغه روايت باطل شمارل كيږي.

(۳۷)ولي لره داجائزنه ده چې بالغه عاقله ښځه په نكاح كولومجبوره كړي خواه كه باكره وي اوكه ثيبه وي ولي چې دښځې له بلوغ څخه وروسته دولي ولايت اجبارمنقطع كيږي.

**ف**:ولايت پردوه قسمه دى،ولايت ندب،ولايت اجبار،.ولايت ندب پرعاقله بالغه باندي وي كه باكره وي كه ثيبه وي، او ولايت اجبارپرصغيره باندي وي كه باكره وي كه ثيبه وي.نوزموږ په نزدولايت اجبارمدارپه صغردى ولي چې دصغرسنى په وجه سره عقل كم وي دكوم په وجه سره چې هغه دخپل ذات په باره كې دتصرف اهل نه وي اوله بلوغ څخه وروسته عقل تاميږي په همدي وجه سره دبارى تعالى خطاب هم ددي طرف ته متوجه كيږي،حال داچې دامام شافعي رحمه الله په نزد دولايت اجبارمدارپه باكره والي باندي دى

لهذازموږپه نزدپرباكره بالغه باندي ولی لره حق اجبارنشته اوددامام شافعی رحمه الله په نزدولی لره حق اجبارحاصل دی.

(۳۸)كه ولی له بالغې باكري ځخه دهغې دنكاح كولواجازت وغوښتی نوداخاموښه شوه يايې وخندل يايې بې له اوازه وژړل نوداخاموش والی ياخندل ياژړابه ددي له طرفه داجازت وي په دي شرط چې خندابه استهزاء نه وي ولی چې باكره ښځه په نكاح كې له رغبت ښكارولو ځخه شرميږي مګرله انكار كولو ځخه نه شرميږي نوكه داناراضه وای نوصاف انكاربه يې كړی وای لهذاخاموشي ،ياخندا درغبت علامه ګڼل كيږي ،اوبې له اوازه ژړاهم پرنكاح دنه راضي والی علامه نه ده بلكه له خپلوانوځخه په جدای دغم علامه ده لهذابې له اوازه ژړابه هم دباكري له طرفه ځخه اجازت ګڼل كيږي اوكه باكره انكاروكړي نوولی دي ددي نكاح نه كوي ولی چې دبلوغ په وجه سره دولی ولايت منقطع شوی دي.

(۳۹)همداشان كه ولی دبالغې باكري نكاح وكړه بيادي ته خبرورسيدواوداخاموشه پاتې شوه نودابه هم ددي له طرف ځخه دنكاح اجازت ګڼل كيږي لمامر.

(۴۰)اوكه له بالغې باكري ځخه له ولی ماسواكوم بل چادنكاح اجازه وغوښته نواوس درضامندي داظهارلپاره سكوت ياضحک كافی نه دی بلكه داجازت وركولولپاره په خوله سره خبره كول ضروري ده ولی چې په دي خاموشي كې دعدم رضااحتمال هم شته چې دغيردكلام لورته دقلت التفات په وجه سره سكوت اختياركړی وي اودولی په حق كې دضرورت په وجه سره په دي شان سره رضامندی معتبره ګرځول شوي ده حال داچې دغيرولی په حق كې هيڅ ضرورت نشته ولی چې باكره بالغه داغياروپه مخ كې له كلام كولو ځخه نه شرميږي.

(۴۱)قوله كالثيب ای كمالابدللثيب من النطق عندالاستيذان ،يعنی كه ولی له ثيبې بالغې ځخه دنكاح په باره كې اجازه وغوښته نوددي له طرف ځخه دضامندي اظهارپه ژبه سره كول ضروري دی ولی چې ثيبه اوس دنكاح په اموروكې تجربه لري اوله نارينه وسره ددي داختلاط په وجه ددي حياء هم كمه شوي ده لهذاددي په حق كې په تكلم سره درضاله اظهارځخه هيڅ مانع نشته.

(۴۲)وَمَنْ زَالَتْ بَكَارَتُهَا بِوَثْبَةٍ أَوْ حَيْضَةٍ أَوْ جِرَاحَةٍ أَوْ تَعْنِيسٍ (۴۳) أَوْ بِزِنًا فَهِيَ بِكْرٌ (۴۴) وَالْقَوْلُ قَوْلُهَا إِنِ اخْتَلَفَا فِي السُّكُوتِ

**ترجمه**: اودچاچې بكارت زائل شوی وي په ټوپ اچولو ياپه حيض ياپه زخم سره ياترديره پوري په بې نكاح پاته كيدلو ياپه زناسره نوهغه باكره شمارل كيږي اوقول دښځې معتبردی كه دواړو اختلاف كړپه سكوت كې

**تشريح**: (۴۲)كه دكومې انجلۍ بكارت زائل شودټوپ اچولوپه وجه سره يادقوت حيض په وجه سره يادكوم زخم په وجه سره يادكثرت عمرپه وجه سره نوپه دي ټولوصورتونوكې داانجلۍ دباكري په حكم ده يعنی داستيذان په وخت كې ددي سكوت اذن نه شمال كيږي ولی چې دابښځه حقيقة باكره ده په دي وجه چې له دي سره جماع كول اول ځل جماع ده اوباكره هغه ده چې له هغې سره تراوسه پوري چاوطی نه وي كړي.

(۴۳)اوكه دباكري بكارت په زناسره زائل شونودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدداهم دباكري په حكم كې ده ولی چې خلک داباكره ګڼی نوكه دنكاح په باره كې كلام وكړي نوخلک به دامعيوبه كړي نوهغه له

کلام کولو څخه منع کوي په دي وجه ددي به ددي په سکوت باندي اکتفاء کیږي ترڅوچې پردي ددي مصالح معطل نه شي.

ف: دامام شافعي او صاحبینو په نزد دا ښځه دثیبه په حکم کې ده ولی چې له دي سره جماع کول اول ځل جماع نه شمارل کیږي لهذا ددي په سکوت باندي به اکتفاء نه کیږي ولی چې دا په حقیقت کې ثیبه ده . دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی القول الراجح: ان الراجح هو قول الامام ابی حنیفة قال العلامة ابن الهمام والاولی ان الفرض ان الزناء غیر مشهور ففی الزامها النطق اشاعة له فیعارض دلیل الزامها النطق دلیل المنع من اشاعة الفاحشة فی هذه الصورة والمنع یقدم عند التعارض فیعمل دلیل نطق الثیب فیما وراء هذه (القول الراجح: ۱/۲۵۴)

(۴۴) کوم کس کومې باکري ښځې ته وویل تاچې کله داخبررسیدلی وو چې ستانکاح زماسره شوي ده نوته خاموشه شوي وي لهذازماسره ستانکاح شوي ده ، ښځې وویل یابلکه ماته په اطلاع رسیدلوسره ماردکړي وه لهذانکاح نه ده شوي ، نوقول به دښځې معتبروي ولی چې ښځه له لزوم عقد څخه انکارکوي (حال داچې له نارینه سره ګواه نشته) لهذادښځې قول به معتبروي.

ف: دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد پرښځې قسم هم نشته حال داچې دصاحبینو په نزد پرښځې قسم شته ، مذکوره بالااختلاف پردي اصل مبنی دی چې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد په باب نکاح کې استحلاف نشته خلافالهما ، فتوی دصاحبینو پرقول ده کمافی شرح التنویر: (فالقول قولها) بیمینها علی المفتی به ، قال ابن عابدین: (قوله علی المفتی به) وهو قولهما وعنده لایمین علیها کما سیاتي في الدعوی في الاشیاء الستة (رد المحتار: ۲/۳۲۸)

(۴۵) وَلِلْوَلِيِّ إِنْكَاحُ الصَّغِيرِ وَالصَّغِيرَةِ (۴۶) وَالْوَلِيُّ الْعَصَبَةُ بِتَرْتِيبِ الْإِرْثِ (۴۷) وَلَهُمَا خِيَارُ الْفَسْخِ بِالْبُلُوغِ فِي غَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ بِشَرْطِ الْقَضَاءِ

**ترجمه**: اوولی لره اختیاردي دکوچنی هلک اوکوچنۍ انجلۍ په نکاح دورکولو ، اوولی عصبه وي دوارثت په ترتیب سره ، اودوئ لره اختیاردی دفسخ ده نکاح له بالغ والی څخه وروسته له داب اوجد څخه دغیرپه صورت کې په دي شرط چې دقاضی حکم وي.

**تشریح**: (۴۵) قوله وللولی انکاح الصغیر ای یجوز للولی انکاح لصغیر ، یعنی ولی لره دکوچنی هلک اوکوچنۍ انجلۍ نکاح کول جائزده خواه که صغیره باکره وي اوکه ثیبه وي ولی چې شرائط ولایت موجوددي یعنی ددوئ دصغرسنی (یعني کم عمري) په وجه سره عاجزوالی.

(۴۶) دنکاح په باب کې داولیاؤ هغه ترتیب دی کوم چې دوراثت په باب دعصباتوترتیب دی ترټولودمخه حقدارزوی دی بیالمسی بیاکړوسی وان سفل ، داصورت په صغاروکې متصورنه دی هوپه معتوه ، اومجنونه کې متصوردی . اوکه زوی وغیره نه وه نوبیاپلارپیانیکه وان علا ، اوکه دانه وو بیاورور دی ماسواله اخیافي وروره ، بیاورارره دی وان سفل ، اوکه داهم نه وو نوبیاکاکادی ماسواله اخیافي اکاڅخه ، بیاداکازوی دی وان سفل : داولیاؤ په باره کې اصل هغه روایت دی کوم چې له حضرت علی رضی الله عنه څخه موقوفا اومرفوعا مروی دی ﴿ الإنكاح إلى العصبات ﴾ (دنکاح دولرحق عصباتولره دی).

(۴۷) قوله ولهما خیار الفسخ ای للصغیر والصغیرة خیار الفسخ بالبلوغ ، یعنی که له پلاررانه که څخه ماسوا کوم بل ولی نکاح کړي وي نوکه څه هم په مهرمثل اوکفوکې یې کړي وي بیاهم له بلوغ وروسته دطرفینوپه نزدصغیراوصغیرې لره خیاربلوغ حاصل دی که یې خوښه شوه نکاح دي برقراروساتي اوکه یې خوښه شوه

نو فسخ دي کړي ولی چې له پلار او نيکه څخه په علاوه کې شفقت کامل نه دی بلکه قاصر دی نو د شفقت د نقصان په وجه سره په مقاصد نکاح کې خلل واقع کيدل ممکن دي د کوم چې تلافی په خيار بلوغ سره ممکنه ده په دي وجه دوئ لره خيار بلوغ حاصل دی ،بياکه د خيار بلوغ په وجه سره نکاح فسخ کيده نو په دي کې د قاضی قضاء شرط ده يعنی له صغيرينو څخه ديوه قول فسخت النکاح ويل کافی نه ده بلکه د قاضی په عدالت کې به مقدمه پيش کړي بيا به قاضی د فسخ نکاح حکم ورکړي نو نکاح به فسخه شي ولی چې د دي خيار په سبب کې ضعف دی او سبب خيار د ولی شفقت ترک کول دي لهذا په قضاء قاضی پسې به موقوفه وي ترڅو دي ته استحکام حاصل شي .

ف: امام ابو يوسف رحمه الله فرمايي چې دوئ دواړو لره خيار فسخ نشته ولی چې نکاح عقد لازم دی له ولی څخه صادر شوی دی لهذا د دي د فسخ په اختيار ورکولو سره د دي لزوم ساقطول صحيح نه دي، همدارازدی نورا وليا ء په پلار او نيکه باندي قياسوی ،د طرفينو قول راجح دی لمافی الدر المختار:(وان كان من كفء وبمهر المثل صح و)لكن(لهما)ای الصغير والصغيرة وملحق بهما(خيار الفسخ)ولو بعد الدخول (الدر المختار علی هامش رد المحتار: ٢/٣٣٢)

ف: که د صغيرا و صغيري نکاح له پلار او نيکه څخه يوه وکړه نو که څه هم په غبن فاحش يا په غير کفو کې هم وي نو دا نکاح لازمه ده له بلوغ وروسته صغيرا وصغيه خيار بلوغ نه حاصليږي ولی چې پلار او نيکه دواړه کامل رائ او ډير شفقت لري په دي وجه د دواړو نکاح لازمه ده نو دا سې شوه لکه له بلوغ څخه وروسته چې پلار يا نيکه د دوئ په رضا سره نکاح ورکړي وي.

(٤٨)وَبَطَلَ بِسُکُوتِهَا إِنْ عَلِمَتْ بِکْرًا (٤٩)لَا بِسُکُوتِهِ مَالَمْ يَرْضَ وَلَوْ دَلَالَةً (٥٠)وَتَوَارَثَا قَبْلَ الْفَسْخِ

**ترجمه**: او خيار فسخ باطليږي د دي په سکوت سره که دي لره علم حاصل شوی وي د بکرپه حالت کې ،نه د صغيرپه خاموشې سره ترڅو چې راضی شوی نه وي که څه هم دلالة وي ،او دواړه به وارثان وي له فسخ نکاح څخه وړاندي .

**تشريح**: (٤٨)يعنی که د صغيرينو نکاح له پلار او نيکه څخه ماسوکوم بل ولی وکړه نو څرنګه چې اوس په بالغ والی سره دوئ ته خيار فسخ حاصل دی مګر داسې وشو چې انجلۍ بلوغ ته په رسيد وسره خاموشه شوه سره له دي چې دا پنه نکاح هم خبره وه نو د انجلۍ د خاموشې په وجه سره د دي خيار فسخ باطليږي ولی کله چې ولی د بالغې باکرې نکاح ابتداء وکړي او دا خاموشه شې نو دا خاموشې اجازت ګڼل کيږي نو د خيار فسخ په صورت کې به هم د دي خاموشې اجازت ګڼل کيږي .

(٤٩)قوله لا بسکوته مالم يرض ای لايبطل خيار الصغير بسکوته مالم يقل رضيت ،يعنی د هلک خيار بلوغ په صرف سکوت سره نه باطليږي ترڅو چې په ژبه سره درضامندي اظهار ونه کړي مثلا داسې ووايي رضيت بالنکاح ،ياله ده څخه د راضی کيدلو کوم واضح دليل ښکاره شي مثلا له دي ښځې څخه مچه واخلي ياله دي سره وطی وکړي يا دي ته د دي مهر او نفقه ورکړي ،حالت بلوغ په حالت ابتداء باندي قياسوي چې په ابتداء نکاح کې د هلک خاموش پاته کيدل کافی نه دي بلکه اظهار رضا ضروري دی .

(٥٠)که د صغيرينو نکاح له ابن اوله جد څخه ماسوا کوم بل ولی کړي وه نو په دي صورت کې څرنګه چې دوئ لره خيار فسخ د بلوغ پر وخت حاصليږي ليکن که له بلوغ څخه وروسته د قاضی د دوئ په منځ

کې له تفریق کولو څخه وړاندې په دوئ کې یو مړشونو هغه بل به دده وارث وي ولې چې داحدالزوجین په مرګ سره نکاح انتهاء ته رسیږي اوکوم شي چې پای ته ورسیږي هغه زائلیږي نه بلکه په مستحکم ډول سره ثابتیږي نوکله چې په مرګ سره دنکاح قرابت مستحکم شونوپه خپل منځ کې به یوه ته دهغه بل وراثت حاصلیږي.

(۵۱)وَلَا وِلَايَةَ لِصَغِيرٍ وَعَبْدٍ وَمَجْنُونٍ(۵۲)وَلَا لِكَافِرٍ عَلَى مُسْلِمَةٍ

**ترجمه**:اودولایت حق حاصل نه دی غلام ،صغیراومجنون لره ،اونه کافرلره په مسلمانې ښځې باندې.

**تشریح**:(**۵۱**)غلام ،صغیراومجنون یوه لره هم دولایت حق حاصل نه دی یعنی دوئ دهیچاولی نشې جوړیدلی ولې چې دوئ لره په خپل ځان دولایت نشته نوپه بل چاخوبه په طریقه اولی سره دوئ لره دولایت حق حاصل نه وي ځکه چې ولایت متعدیه دولایت قاصره فرع ده.

(**۵۲**)قوله وکافرعلی مسلمة ای لاولایة لکافرعلی مسلمة ،یعنی کافرلره په مسلمانې ښځې باندې دولایت حق نشته لقوله تعالی﴿وَلَن يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا﴾(هیڅکله به جوړه نه کړي الله تعالی کافرلره په مسلمان باندې کومه لار)،له لارې اوسبیل څخه مراددلته تصرف شرعی دی ،همداوجه ده چې دمسلمان پرخلاف دکافرګواهی نه قبلیږي ،اوپه مسلمان اوکافرکې یوهم دهغه بل وارث نشې جوړیدلی،البته کافردخپلې کافرې لورنکاح کولی شي لقوله تعالی﴿ وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ﴾(یعنی کفاربعض دبعضوولیان دي)همداوجه ده چې دکافرپه خلاف دکافرګواهی قبلیږي اویوکافردبل کافروارث کیدای شي.

(۵۳)وَإِنْ لَمْ تَكُنْ عَصَبَةٌ فَالْوِلَايَةُ لِلْأُمِّ ثُمَّ لِلْأُخْتِ لِأَبٍ وَأُمٍّ ثُمَّ لِأَبٍ ثُمَّ لِأَوْلَادِ الْأُمِّ ذُكُورُهُمْ وَإِنَاثُهُمْ فِيهِ سَوَاءٌ ثُمَّ لِأَوْلَادِهِمْ ثُمَّ لِلْعَمَّاتِ ثُمَّ لِلْأَخْوَالِ وَالْخَالَاتِ ثُمَّ لِبَنَاتِ الْأَعْمَامِ ثُمَّ لِلْحَاكِمِ(۵۴)وَلِلْأَبْعَدِ التَّزْوِيجُ بِغَيْبَةِ الْأَقْرَبِ مَسَافَةَ الْقَصْرِ(۵۵)وَلَا يَبْطُلُ بِعَوْدِهِ(۵۶)وَوَلِيُّ الْمَجْنُونَةِ الِابْنُ لَا الْأَبُ

**ترجمه**:اوکه دکومې ښځې عصبات نه وو نودولایت حق مورلره دی بیاحقیقی خورلره بیاعلاتی خورلره بیااخیافی وروروخورلره بیاذوی الارحامولره بیاحاکم لره دی،اوولی بعیدته دنکاح کولواختیارشته دولی قریب دغائبیدلوپه صورت کې بقدرد مسافت دقصر،اونه باطلیږي دولی قریب په بیرته واپس راتلوسره،اودمجنونې ولی زوی دی نه پلار.

**تشریح**:(**۵۳**)دامام ابوحنیفه رحمه الله دقول مطابق که دصغیرې کوم عصبه نه وو نوبیاولایت نکاح ددې مورلره حاصل دی که مورنه وه بیاددې حقیقې خورلره حاصل دی که حقیقې خورنه وه بیاعلاتی خور(کومه چې صرف په پلارشریکه وي)لره حاصل دی که هغه نه وه بیااخیافی خور،یاورور(یعنی کوم چې صرف په مورشریک وي)لره حاصل دی اخیافی وروراوخورپه حق ولایت کې سره برابردي که په دوئ کې څوک نه وو نوبیانوروذوی الارحامو(مثلاعمه ،بیاماما ،بیاخاله، بیادماماولادعلی هذاالقیاس)لره حاصل دی اوکه داهم نه وو نوبیاحاکم ته حق ولایت حاصل دی لقوله ﷺ﴿ السُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ ﴾(یعنی امام ولی دی دهرهغه چاد کوم چې ولی نه وي).

**ف**:لوړذکرشوی تفصیل دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددی چې که دصغیرې عصبات نه وو نونوروقریبانو مثلاماما،خاله وغیره ته ولایت ثابتیږي ،حال داچې دامام محمد رحمه الله په نزددعصباتو دنه وجودپه صورت

کې ولایت نورو قریبانو ته نه ثابتیږي ولې چې دنبی کریم ﷺ ارشاددی ﴿اَلْاِنْکَاحُ اِلَی الْعَصَبَاتِ﴾(یعني نکاح عصبات ته سپارل شوي ده )دالانکاح اوالعصبات الف لام جنسي دی یعنی جنس نکاح جنس عصباتوته سپارل شوي ده له عصباتو څخه ماسوادنورقریبانوپه دي کې هیڅ دخل نشته .اوددامام ابویوسف رحمه الله قول مضطرب دی مشهوره داده چې امام ابویوسف رحمه الله له امام محمد رحمه الله سره دی . دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادی چې دولایت مدارپرشفقت دی اوشفقت په هرهغه کس کې موجوددی په کوم کې چې داسې قرابت وي کوم چې باعث شفقت وي لهذاپه چاکې داسې قرابت وي هغه ته ولایت حاصل دی خواه که عصبه وي یاغیرعصبه اودکوموقریبانو تذکره چې وشوه په هغوئ کې همدغه شفقت موجوددی کوم چې دشفقت سبب دی.باقي دحدیث مطلب دادی چې دعصباتوپه موجودوالی کې ولایت دوئ ته سپارل شوی دی دنورودخل نشته، دامطلب نه دی چې دعصباتوپه عدم موجودوالی کې هم نورولره دخل نشته .

ف:دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الشامیة :(قوله فالولایة للام الخ )ای عندالامام ومعه ابویوسف فی الاصح وقال محمدلیس لغیرالعصبات ولایة وانماهی للحاکم والاول الاستحسان والعمل علیه الافی مسائل لیست هذه منها فماقیل من ان الفتوی علی الثانی غریب لمخالفته المتون الموضوعة لبیان الفتوی من البحروالنهر (ردالمحتار:۲/۳۳۹)

(۵۴)که دکومې انجلۍ ولی اقرب (مثلاپلار)په غیبت منقطه سره غائب شونوولی ابعد (مثلانیکه )لره ولایت تزویج حاصلیږي ولې چې دولایت مدارپرشفقت دی اودچاله رأيي څخه چې نفع اخیستل ممکن نه وي دنکاح دامورهغه ته په سپارلوکې هیڅ شفقت نشته په دي وجه موږولی ابعدته ورسپاری ،اودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدولی ابعدله امام المسلمین څخه مقدم دی دامام شافعی رحمه الله په نزدامام مقدم دی.له غیبت منقطه څخه مراددادی چې دادنی مدي دسفریعنی ددریوورځوپه مسافت تللی وي.

ف:دځینوحضراتورأیه داده چې ولی په کوم داسې ښارکې وي چیرته چې قافلې په کال کې صرف یوځل ورځي. اودځینورأیه داده چې که ولی داسې ځای ته تللی وو چې که دده رأیه معلومه کیده نوکفوفوت کیده نودابه گڼل کیږي چې دی غائب په غیبت منقطعه سره دی اوهمداا خري قول اقرب الی الفقه دی ولې چې دکفودفوت کیدلوباوجودپه ولایت باقي پرینبودلوکې هیڅ شفقت نشته کمافی الشامیة :وقال فی الذخیرة الاصح انه اذاکان فی موضع لوانتظر حضوره اواستطلاع رأیه فات الکفوالذی حضر فالغیبة منقطعة والیه اشارفی الکتاب وفی النهایة واختاره اکثرالمشائخ وصححه ابن الفضل وفی الهدایة انه اقرب الی الفقه وفی الفتح ان الاشبه بالفقه وفی شرح الملتقی عن الحقائق انه اصح الاقاویل وعلیه الفتوی (ردالمحتار:۲/۳۴۳)

(۵۵)په لوړذکرشوي صورت که ولی ابعدنکاح وکړي بیاولی اقرب واپس راشي نودده په بیرته راتللوسره دولی ابعدکړل شوي نکاح نه باطلیږي که څه هم ولی اقرب پردي راضی نه وي ولې چې دولی ابعدکړل شوي نکاح له ولایت تامه څخه صادره شوي ده .

ف:دامام زفر رحمه الله په نزدولی ابعدله طرفه شوي نکاح باطلیږي ،زموږدلیل دادی چې شریعت ابعدد اقرب قائم مقام جوړکړی دی اوقاعده داده چې په قائم مقام سره دمقصودله حاصلیدلوڅخه وروسته پر اصل

باندې قدرت مفسد عمل نه دی لکه څرنګه چې څوک په تمیم سره له لمانځه اداء کولو وروسته په اوداسه باندې قادرشي نوپه تیمم سره اداء شوی لمونځ نه باطلیږي .

(۵۶)صورت مسئله دادی چې دکومې مجنونې ښځې پلارهم شته اوله مځکني خاوندڅخه یې زوی هم شته نو دشیخینوپه نزددولایت حق زوی ته حاصل دی اوداامام محمد رحمه الله په نزدپلار ته حاصل دی . دامام محمد رحمه الله دلیل دادی چې ددې ولایت مدارپرشفقت باندې دی اوشفقت په پلارکې دزوی په نسبت زیات دی همدا وجه ده چې پلاردمال اونفس دواړوپه باره کې ولایت حاصل دی حال داچې زوی لره ولایت مال حاصل نه دی لهذادولایت نکاح به پلارلره وي .دشیخینودلیل دادی چې په عصبه والی کې زوی ترپلارمقدم دی اودا ولایت پرعصوبت باندې مبنی دی ولی چې دنبی کریم ﷺ ارشاددی ﴿الإِنْكَاحُ إِلَى الْعَصَبَاتِ﴾ (یعنی نکاح عصوباتوته سپارل شوی ده )لهذاددې ولایت حق به دزوی وي .

ف:لیکن افضل دادی چې پلارزوی ته دنکاح کولوامروکړی ترڅوبلاخلافه جائزشي لمافی الدرالمختار: (وولی المجنونة فی النکاح ابنهادون ابیها) کمامر والاولی ان یامر الاب به لیصح اتفاقا(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار:۲/۳۳۳)

## فَصْلٌ فِي الأَكْفَاءِ

دافصل دهمسرو (هم مثلو)په بیان کې دی

اکفاء ،دکفوجمع دی په معنی دنظیراوهمسر،دنکاح په باب کې کفاءت (دنارینه له ښځې سره په اسلام ، نسب ،تقوی، حریت اوپه مال اوحرفت کې مساوي والی ته کفاءة ویل کیږي )معتبردی اوکفاءت دنارینه له طرفه معتبردی ولی چې شریفه ښځه دخسیس لپاره فراش والی نه خوښوي لهذاکفاءت ضروري دی ، اودښځې له طرفه معتبرنه دی ولی چې دنارینه لپاره دناءة فراش دعارباعث نه دی .

که ښځه خپله نکاح په خپله کوي نوددې پرولی دنکاح دلازموالی لپاره دنکاح په کفوکې کیدل شرط دی که نه نو ولی ته حق فسخ حاصلیږي لهذادکفاءت مسئله دوجودولی فرع ده په دې وجه یې داولیاؤاحکام مقدم بیان کړل اوس دکفاءت احکام بیانوي .

(۵۷)مَن نَكَحَتْ غَيرَ كُفءٍ فَرَّقَ الوَلِيُّ (۵۸)وَرِضَا البَعْضِ كَالكُلِّ (۵۹)وَقَبضُ المَهرِ وَنَحوِهِ رِضًا لَا السُّكُوتُ (۶۰)وَالكَفَاءَةُ تُعْتَبَرُ نَسَبًا فَقُرَيْشٌ أَكْفَاءٌ وَالعَرَبُ أَكْفَاءٌ وَحُرِّيَّةً وَإِسْلَامًا وَأَبَوَانِ فِيهِمَا كَالآبَاءِ وَدِيَانَةً وَمَالًا وَحِرفَةً (۶۱)وَلَو نَقَصَتْ مِن مَهرِ مِثلِهَا فَلِلوَلِيِّ أَنْ يُفَرِّقَ أَو يُتِمَّ مَهرَهَا

**ترجمه** :کومه ښځه چې نکاح وکړي په غیرکفوکې نوتفریق دې وکړي په دوئ کې ولی ،او دځینورضا دټولورضاده ، او قبضه کول په مهروغیره رضاده نه خاموشي ،اوکفائت معتبردی دنسب په اعتبارسره نوقریش په خپل منځ کې سره کفودی اوعرب په خپل منځ کې سره کفودي ،اوازادی او اسلام په لحاظ سره اوپلاراونیکه په دوئ کې داباءاواجدادوپه شان دي اوپه دینداري اومال اودکسب په لحاظ سره ، اوکه ښځې کم کوله مهرمثل څخه نوولی لره اختیاردی چې په دوئ کې تفریق وکړي یاخاوندپوره کړي ددې مهرمثل .

**تشريح**:(۵۷) كه كومې ښځې خپله نكاح پخپله له غيركف سره وكړه نوداځكه چې ددې داولياؤپه حق كې باعث دعارده لهذااولياؤلره داحق حاصل دى چې ددوئ په منځ كې دقاضي په فيصله سره تفريق وكړي ترڅوله اولياؤڅخه عاردفع شي .

**ف**:اوداحق دښځې دبچې ترپيداكيدلومخكې دى دبچې له پيداكيدلوڅخه وروسته داولياؤداحق ساقطيږي ترڅوبچې ضائع نه شي .دظاهرمذهب دى حال داچې دحسن په روايت كې راغلى دي چې دانكاح بالكل منعقده شوي نه ده ځرنګه چې دواړه قولونه مفتى به دي لهذاپردواړوفتوى وركول كيداى شي خوبياهم احتياط دحسن په روايت كې دى .

(۵۸)كه كومې ښځې له غيركف سره خپله نكاح وكړه نوددي اولياؤلره ځرنګه چې حق دفسخ حاصل دى مګرداسې وشوچې دښځې بعضواولياؤپردي خپله رضامندي ښكاره كړه نودابه اوس دټولواولياؤ رضاګڼل كيږي په دي شرط چې اولياء په درجه كې سره مساوي وي دادطرفينومذهب دى .امام ابويوسف رحمه الله فرمايې چې دبعضورضادټولورضانه ګڼل كيږي ولى چې داخوداسې ده لكه چې ددوو قرض وركونكوپريوچاباندې مشتركه قرضه وي نوديوه دخپل حق په ساقطولوسره دهغه بل حق نه ساقطيږي.دطرفينودليل دادى چې ځرنګه چې داحق واحد دى تجزى نه قبلوي لهذابعضوپه ساقطولو سره دټولوله طرفه ساقط ګڼل كيږي حال داچې ددين په صورت كې حق واحدنه دى بلكه متعدددى ، البته كه اولياء په درجه كې سره برابرنه وو نودابعدپه رضاسره بالاتفاق داقرب حق نه ساقطيږي .

(۵۹)كه كومې ښځې له غيركف سره خپله نكاح وكړه نوددي اولياؤلره ځرنګه چې حق دفسخ حاصل دى مګرداسې وشو چې ولى له خاوندڅخه دښځې مهروصول كويايې دښځې نفقه وغيره قبض كړه يايې دتجهيزبندوبست وكړيايې دخاوند هديه قبوله كړه نوداپردي نكاح دولى درضامندي ثبوت دى ولى چې دادحكم عقدتقريراوتحكيم دى لهذاله دي څخه وروسته به دده دفسخ حق باقى نه پاتې كيږي .اوكه ولى ددي دنكاح خبرواوريدواوخاموش شونودادده درضاثبوت نه دى ولى چې خاموشي په هغو حقوقوكې درضادليل دى په كوموكې چې خبري كول عيب شمارل كيږي وهذاليس كذالک .

(۶۰)په كومه شيانوكې چې كفاءة معتبردى له هغوڅخه مصنف رحمه الله شپږشيان ذكركړي دي

**نمبر ۱**.په نسب كې كفاءة معتبردى ولى چې خلک په خپلومنځونوكې په نسب سره يوپربل فخركوي ، نوقريش په خپل منځ كې سره كفو دي اوله قريشوڅخه ماسوانورعرب په خپل منځ كې سره كف دي اوباقى عرب دقريشوكف نه دي .عجم په خپلومنځوكې سره كف دي دعربوكف نه دي لقوله ﷺ ﴿ قُرَيْشٌ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ بَطْنٌ بِبَطْنٍ وَالْعَرَبُ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ قَبِيلَةٌ بِقَبِيلَةٍ وَالْمَوَالِي بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ رَجُلٌ بِرَجُلٍ ﴾(قريش په خپل منځ كې يودبل كف دي ،يوبطن دهغه بل بطن سره ،اوعرب په خپل منځ كې يوله بله سره كف دي ،يوقبيله دبلې قبيلې ،اواعاجم په خپل منځ كې يوله بله سره كف دي ،يوكس دبل كس سره ).

**ف**:په ټولوانسانانوكې ترټولوافضل بنوهاشم دي بياقريش بياعرب دي لقوله ﷺ ﴿ أَنَّ اللهَ اخْتَارَ مِنَ النَّاسِ الْعَرَبَ وَمِنَ الْعَرَبِ قُرَيْشًا وَاخْتَارَ مِنْهُمْ بَنِي هَاشِمٍ وَاخْتَارَنِي مِنْ بَنِي هَاشِمٍ ﴾ دنضربن كنانه اولادته قريش ويل كيږي اودهاشم بن

عبدمناف اولادته بنوهاشم ويل كيږي اوعرب هغه دي كوموته چې له نضربن كنانه څخه لوړكوم پلارجامع وي له دي څخه علاوه ته عجمي ويل كيږي.
نمبر ۲.قوله وحرية اى تعتبر الكفاءة ايضامن حيث الحرية ،يعني په ازادوالى كې كفاءت معتبردى لهذادچاچې پلارغلام وي هغه دنسلاازادكف نه دى ولى چې غلام والى دكفراثردى په كوم كې چې دذلت معنى موجوده ده اوحريت داسلام اثردى په كوم كې چې دعزت معنى موجوده ده.
نمبر ۳.قوله واسلامااى تعتبر الكفاءة ايضامن حيث الاسلام ،يعني په اسلام كې كفاءت معتبردى نوكه كوم څوك پخپله مسلمان وي اوبل څوک داسې وي چې پلارېې هم مسلمان وي نولومړنى دهغه بل كف نه دى ولى چې عجمي خلک داسلام په ذريعه سره يوپربل فخركوي نودچاچې پلارهم مسلمان وي نوهغه ته يوه نوعه زائده دفخرذريعه حاصله ده پرهغه باندي دچاچې پلارمسلمان نه وي .قوله وابوان فيهمااى وابوان فى الحرية والاسلام ،يعني دچاچې پلاراونيكه مسلمان نه وي ياازادنه وي هغه دهغه كس كف نه دى كوم چې نسلاًمسلمان وي يانسلاازادوي ولى چې دنسب تكميل دپلاراونيكه دواړوپه ذكركولوسره كيږي په دي وجه په باب شهادت كې دګواه تعريف دطرفينوپه نزددپلاراونيكه دواړوپه ذكرسره حاصليږي له پلاراونيكه ماسوادكوم بل چاذكركولوضرورت نشته .البته دامام ابويوسف رحمه الله په نزددګواه اودګواه دپلاردنامه په ذكركولوسره تعريف مكمل كيږي دنيكه دنامه دذكركولو ضرورت نشته ./نمبر ۴.قوله وديانة اى تعتبر الكفاءة من حيث الديانة ،اوپه ديانت كې كفاءة معتبردى لهذافاسق كس دصالح ښځې يادصالح دلوركف نه دى،دادشيخينومسلک دى وجه يې داده چې دين له اعلى مفاخرو څخه دى اوخلک چې ښځې ته ددى دخاوندنسب په ټيټ والى سره څومره عارورکوي له دي څخه زيات دخاوندپه فاسق والى سره عارورکوي.
ف:دامام محمد رحمه الله په نزدپه ديانت كې كفاءة معتبرنه دى ولى چې ديانت له اموراخرت څخه دى ددنيااحكام به پردده نه موقوف نه وي البته كه هغه په دومره درجه كې فاسق وو چې په عام بازاركې خلكوپه هغه پسخند واهه يادنشې په حالت كې خلكوبازارته رايستلوترڅوماشومان په هغه بازى وكړي نودادخپل انتهائي حقارت په وجه سره ديوې نيكې ښځې كف نه دى ،دشيخينوقول راجح دى لمافى البحرالرائق:فالافتاء بمافى المتون اولى فلايكون الفاسق كفوللصالحة بنت الصالحين سواء كان معلنابالفسق اولا كمافى الذخيرة (البحر الرائق:۲/۲۳۲)
/نمبر ۵.قوله ومالااى وتعتبرالكفاءة من حيث المال ،يعني په زوجينوكې دمال په اعتبارسره هم كفاءة معتبردى ،له مال څخه مراددادى چې خاوندپه مهراونفقه اداء كولوباندي قادروي ولى چې په نفقه سره خودرشته ازدواج قيام اودوام دى اومهردبضع عوض دى دهغه سپارل ضروري دى ،له دي څخه علاوه په غناء كې كفاءة شرط نه دى ،نوپه مهراونفقه باندي قدرت لرونكى دلويوسرمايه دارانوكف دى.
/نمبر ۶.قوله وحرفة اى وتعتبرالكفاءة من حيث الحرفة ،يعني په كسب وكاركې هم كفاءة معتبردى ولى چې خلک په عمده اوښه كسبونوفخركوي اوپه خرابوكسبونوباندي شرميږي ،دادصاحبينومسلک دى .له امام ابوحنيفه رحمه الله څخه دوه روايته منقول دي ،له امام ابويوسف رحمه الله څخه هم يوروايت داسې دى چې كفاءة معتبرنه دى الاكه كسب وكارانتهائي سپک وي .اوپه شرح الطحاوى كې مذكورده چې دمتقاربو

كسبونوښځتنان په خپلو منځو كې سره كف دي اودمتباعدو كسبونوښځتنان په خپلو منځو كې سره كف نه دي.

**ف**:فتوي پردي ده چې دمتقاربو كسبونو ارباب په خپلو منځو كې سره كف دي اودمتباعدو كسبونو ارباب په خپلو منځو كې سره كف نه دي لمافي الشامية:ان الحرف اذاتباعدت لايكون المراداحدها كفو الاف اد الاخرى بل المرادكل واحدا كفاء بعضهم لبعض والفاد كمافي البحر انه لايلزم اتحادهمافي الحرفة بل التقارب كاف.......قال الحلواني وعليه الفتوى(ردالمحتار:۲/۳۴۹)

(**۶۱**)كه كومې بالغې ښځې خپله نكاح وكړه اوله مهرمثل څخه يې لږمهرمقرركړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزداولياؤلره پردي داعتراض حق حاصل دى ترڅوچې خاوندى ددي مهرمثل پوره اداء كړي ياددوئ ترمنځ دقاضي په فيصله سره تفريق وكړي .دصاحبينوپه نزداولياؤلره داعتراض حق نشته .دصاحبينودليل دادى چې ترلس درهمه پوري مهر خودشريعت حق دى اوله دي څخه زائددښځې حق دى نوښځې په مهرمثل كې په كمي كولوسره خپل حق ساقط كړى دى اوكوم څوك چې خپل حق ساقط كړي پرهغه هيڅ اعتراض نشته .دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادى چې اولياء دخپل خاندان دښځو په ګرانومهرونوباندي فخركوي اوپه كمومهرونو باندي عارمحسوسوي نوپه مهركې كمي دعدم كفو سره مشابه ده لهذادعدم كفوپه شان دمهردكمي په صورت كې به هم اولياؤته حق داعتراض حاصل وي.

**ف**: دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دى كمافي الشامية:(قوله دفعاللعار)اشارالى الجواب عن قولهماليس للولي الاعتراض لان مازادعلى عشرة دراهم حقهاومن اسقط عن حقه لايعترض عليه ولابى حنيفه ان الاولياء يفتخرون بغلاء المهور ويتعيرون بنقصانهافاشبه الكفاءة ،بحر،والمتون على قول الامام(ردالمحتار:۲/۳۵۲)

(۶۲)وَلَوْزَوَّجَ طِفْلَهُ غَيْرَكُفءٍ اَوْبِغَبْنٍ فَاحِشٍ صَحَّ (۶۳)وَلَمْ يَجُزْ ذٰلِكَ لِغَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ

**ترجمه** :اوكه نكاح وكړه چادخپل كوچني بچي له غيركف سره يا په مهركې په غبن فاحش سره نوداصحيح ده ،اوجائزنه ده داله اب اوجد څخه دماسوا لپاره.

**تشريح** :(**۶۲**)كه پلاريانيكه دكوچني هلك ياكوچني انجلۍ نكاح له غيركف سره وكړه مثلاً دهلك نكاح يې له مينځې سره وكړه يايې دانجلۍ نكاح له غلام سره وكړه يايې په مهركې په كمي يازياتوب سره نكاح وكړه مثلاًدانجلۍ نكاح يې په ډيرلږمهرسره وكړه يايې دهلك نكاح وكړه اومهريې يېخي ډيرمقرركړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددانكاح صحيح ده، ولې چې پلاراونيكه كامل الرأى اووافرالشفقتدي نوظاهره ده چې په مهركې كمي يازياتوب دكوم بل منفعت لپاره ده، همدا وجه ده چې كه پلاراونيكه دفسق په بناء باندي داسې وكړل نوجائزنه ده.

**ف**:دصاحبينوانورائمه وپه نزدداجائزنه ده ولې چې په مهركې كمې بيشي كول په مال كې كمې بيشې ده اوپه حقوق ماليه كې دكوچنيانوپه حق كې كمې بيشي جائزنه ده همدا وجه ده چې دكوچني مال په انتهائي كم قيمت سره خرڅول بالاتفاق جائزنه دي ،صاحبينوته ځواب وركړل شوى دى چې په اخيستلوخرڅولو كې خومال مقصودوي لهذاپه دي كې غبن شفقت نه دى حال داچې په نكاح كې صرف مال مقصودنه وى بلكه له مال څخه زيات نورډيرمقاصدوي په دي وجه سره باب نكاح كې په مال كې كمې بيشى دفقدان شفقت دليل نه دى.

ف: دامام صاحب قول راجح دی لمافی الهندية: ولوزوج ولده الصغير من غير كفوء بان زوج ابنه امة اوبنته عبدا اوزوج بغبن فاحش بان زوج البنت ونقص من مهرها اوزوج ابنه وزادعلى مهرامرأته يجوز عندابی حنيفة كذافی التبيين وعندهما لايجوز............. والصحيح قول ابی حنيفة كذافی المضمرات. (هنديه: ۱/۲۹۴)

ف: سيئ الاختيارپلاردصغيري نكاح په مهرمثل سره په كف كې كړي ده مګرپه دي كې دپلاردطمع اوذاتي غرض په وجه سره په صغيره باندي عدم النظرظاهراومتيقن وي مثلاپه عمركې ډيرزيات تفاوت وی يازوج دائم المرض يامعتوه ياشل وغيره وي نودانكاح نافذيږی كه يا؟په ځينوعلاقوكې داظلم عام دی په دی وجه سره په اهل فتوی باندي دي طرف ته خاص توجه كول لازم ده بنده چې تراوسه پوري پردي باندي ځومره غوركړی دی دهغه حاصل دادی چې په دي زمانه كې دغلبه فسق په وجه سره دصورت مذكوره داكثرو واقعاتوحل داسې رواځې چې دسيئ الاختيارپلارتزويج بالفاسق خوباطل دی پاتې شوه شاذاونادره كومه داسې واقعه چې زوج فاسق نه وي نوصرف دامورمذكوره په بناء باندي دداسې نكاح څه حكم دی ؟نوبه فقه حنفی كې خوددي صريح حكم په نظرنه ده راغلی البته دفقه شافعی په كتاب شرح المهذب لمحمدنجيب المطيعی كې داعبارت شته قال الصميری ولايزوج ابنه الصغيربعجوزهرمة ولابمقطوعة اليدين والرجلين ولاعمياء ولازمنة ولايهودية ولانصرالية ولايزوج ابنته الصغيرة بشيخ هرم ولابمقطوع اليدين والرجلين ولابالاعمی ولاازمن ولابفقيروهی غنية فان فعل ذالک فسخ، وعندی انهاتحتمل وجهااخراله لايكون له الفسخ بانه ليس باعظم ممن زوج ابنته الصغيرة بمجذوم اوابرص (شرح المهذب: ۱۵/۳۵۴)،له دي څخه ثابته شوه چې دشوافعوپه نزدپه اموربالاكې دكفاءت داعتبارروايت شته ،داحنافو له څه عباراتوڅخه هم په دي مسئلې باندي رڼا لويږي ............. دشاميه اونوركتابونوله ډيروعباراتوڅخه داثابتيږي چې مشائخوكفاءت په امورمرويه عن الائمه كې منحصرنه دي ګڼلې بلكه دزمانې دحالاتواوعرف په لحاظ سره په دي كې دنورزيات غوراوفكرګنجائش شته ،نوبناء عليه دبنده رايه داده چې دعدم تناسب عمروغيره امورمذكوره په صورت كې دبطلان نكاح فتوی خودنه وركوي په دي وجه چې په دي كې دضرردوجوداوعدم وجوداوشدت اوخفت فيصله داهل الرأی دغوراوفكرمحتاج ده لهذاانجلۍ ته خياربلوغ بايدوركړل شي اوهغه دي دخياربلوغ دشرائطو معهوده مطابق په عدالت كې مقدمه پيش كړي حاكم دي به اهل الرای سره دحالاتوتحقيق وكړي كه يې مناسبه وګڼله نونكاح دي فسخ كړي. والله تعالی اعلم (احسن الفتاوی: ۵/۱۲۳)

(۶۳) اوكه له پلاراونيكه څخه ماسواكوم بل ولی دهلک ياانجلۍ نكاح په غيركف كې وكړه يايې په مهركې ډيركمبوت يازيادت وكړ نودابالاتفاق جائزنه ده ولی چې له پلاراونيكه څخه ماسواپه نورقريبانوكې هغه شفقت نشته كوم چې پلاراونيكه كې دی لهذادنقصان شفقت په وجه سره دغبن فاحش په صورت كې دانكاح جائزنه ګڼل كيږي.

## فَصْلٌ فِي الْوَكَالَةِ بِالنِّكَاحِ وَغَيْرِهَا

دافصل دنكاح دوكالت وغيره په بيان كې دی

څرنګه چې وکالت هم يوقسم ولايت دی ولی لکه څرنګه چې دولی تصرف په مولی عليه باندی نافذيږي همداشان دوکيل تصرف هم پرموکل باندي نافذيږي په دي وجه سره مصنف رحمه الله له ولايت اوکفاءت څخه وروسته وکالت فی النکاح ذکرکړی دی.

(٦٤) لِابْنِ الْعَمِّ أَنْ يُزَوِّجَ بِنْتَ عَمِّهِ مِنْ نَفْسِهِ (٦٥) وَلِلْوَكِيلِ أَنْ يُزَوِّجَ مُوَكِّلَتَهُ مِنْ نَفْسِهِ (٦٦) وَنِكَاحُ الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ بِغَيْرِ إِذْنِ السَّيِّدِ مَوْقُوفٌ (٦٧) كَنِكَاحِ الْفُضُولِيِّ (٦٨) وَلَا يَتَوَقَّفُ شَطْرُ الْعَقْدِ عَلَى قَبُولِ نَاكِحٍ غَائِبٍ (٦٩) وَالْمَأْمُورُ بِنِكَاحِ امْرَأَةٍ لِمُخَالَفٍ بِامْرَأَتَيْنِ (٧٠) لَا بِأَمَةٍ

**ترجمه**: جائزده داکازوی لره داچې هغه نکاح وکړي دخپل اکا دلورله خپل ځان سره، اوجائزده وکيل لره داچې هغه نکاح وکړي دخپلې موکلې له خپل ځان سره، اودغلام اومينځې نکاح دمولی له اجازي څخه بغيرموقوفه ده، لکه دفضولی نکاح، اوموقوف نشي پاتې کيدلی نصف عقد دغائب نکاح کونکې ترقبولولوپوري، اوله يوي ښځې سره دنکاح کولو مامورمخالفت کونکی شمارل کيږي ددووښځوپه نکاح کولوسره، نه له مينځې سره.

**تشريح**: (٦٤) قوله لابن العم ان يزوج ای يجوز لابن العم ان يزوج، صورت دمسئلې دادی چې که دانجلۍ ولی ددي داکازوی وو په دي شرط چې انجلۍ بالغه نه وي اوددي داکاله زوی څخه ماسواددي کوم اقرب ولی نه وي نوددي اکادزوی له دي انجلۍ سره خپله نکاح کول جائزده مثلاً ګواهانوته يې وويل چې تاسې ګواه اوسئ چې ماخپله نکاح له فلانکۍ انجلۍ سره وکړه کومه چې دفلان بن فلان لورده په دي صورت کې دقبول ضرورت نشته ولی چې داکادزوی عبارت دايجاب اوقبول دواړوقائم مقام دی، اوکه انجلۍ بالغه وي نوبياددي صورت دادی چې هغه خپل داداکازوی دنکاح کولووکيل جوړکړي.

ف: دامام شافعی اوامام زفررحمهما الله تعالی په نزدجائزنه ده ولی چې يوکس ديوه شي په يوه وخت کې مملک اومتملک (يعنی مالک جوړونکی اوملک حاصلونکی) نشي جوړيدلی. زموږدليل دادی چې په نکاح کې وکيل محض تعبيرکونکی اوسفيروي اوپه مملک اومتملک کې منافات په حقوقوکې دی په تعبيرکې نشته يعنی داصحيح دی چې يوکس دښځې له طرفه دمالک جوړولوالفاظ وايي اوله خپله طرفه دمالک جوړيدلوالفاظ وايي اودلته همداکيږي چې داکازوی دانجلۍ له طرفه دمالک جوړولوالفاظ وايي اوله خپله طرفه دمالک جوړيدلوالفاظ وايي همداشان په راتلونکې مسئله کې هم دي.

(٦٥) قوله وللوکيل ان يزوج موکلته ای يجوز للوکيل ان يزوج موکلته، يعنی که کومې ښځې کوم کس له خپل ځان سره دنکاح کولووکيل جوړکړاوهغه ددووګواهانوپه مخ کې دموکلې نکاح له خپل ځان سره وکړه مثلاً ويې ويل چې تاسې ګواه اوسئ چې ماخپله نکاح له فلانکۍ انجلۍ سره وکړه کومه چې دفلان بن فلان لورده نوداجائزده لماقلنا.

ف: مګرداپه دي صورت کې ده چې انجلۍ دی له خپل ځان سره دنکاح کولووکيل جوړکړی وي اوکه انجلۍ ده ته داسې وويل چې له کوم کس سره زمانکاح راوکړه نودوکيل لپاره داجائزنه ده چې دهغې نکاح له خپل ځان سره وکړي.

(٦٦) دغلام اومينځې نکاح دمولی له اجازي څخه بغيرموقوفه ده که مولی اجازه ورکړه نونکاح صحيح کيږي که نه نو نه صحيح کيږي لقوله ﷺ ﴿أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهُ فَهُوَ عَاهِرٌ﴾ (يعنی کوم غلام چې دمولی

له اجازي څخه بغيرنكاح وكړي نوهغه زاني دى )همدارازدغلام اومينځې نكاح ددوئ په حق كې عيب شمارل كيږي لهذادمولى له اجازي څخه بغيرهغه دددي نفاذمالک نه دی .

(۶۷)قوله كنكاح الفضولي اى كمايتوقف نكاح الفضولي على الاجازة .يعني كه كوم فضولي كس (فضولي په معنى دمالايعنى كې مشغول كيدل،دفقهاؤپه اصطلاح كې فضولي هغه كس دى چې نه اصيل،نه وكيل اونه وصى وي بلكه يوپردى كس دچاپه حق كې له شرعى اجازي بغيرتصرف وكړي )دكوم كس نكاح له كومې ښځې سره وكړي دهغه داجازي بغيرنوداهم دغلام اومينځې دمولى له اجازي څخه بغيردنكاح كولوپه شان موقوفه ده كه هغه په خبريدلوسره اجازه وركړه نودانكاح نافذيږي كه نه نو باطله ده ولى چې دغيرپه حق كې تصرف دى لهذادهغه له اجازي بغيرنه نافذيږي .

(۶۸)دعقدنكاح نصف حصه يعني ايجاب دهغه كس په قبولولوپسې نشې موقوف كيدلى كوم چې له مجلس څخه غائب وي مثلاښځې ددووګواهانوپه مخ كې دكوم غائب كس په باره كې وويل چې ماله ده سره نكاح وكړه ،يانارينه دګواهانوپه مخ كې وويل چې ماله فلانكۍ غائبې ښځې سره نكاح وكړه ،نوددوئ داايجاب دهغه بل ترراتلوپوري موقوف نه پاتې كيږي چې هغه راشې اوصرف قبول وكړي اوعقدپوره شي بلكه دهغه له راتلو څخه وروسته به له سره نوى عقدكوي .

(۶۹)كه كوم كس څوک وكيل جوړكړچې زماله يوي ښځې سره نكاح وكړه وكيل په عقدواحد كې له دووښځوسره دده نكاح وكړه نودى دموكل دامرمخالفت كونكى شمارل كيږي لهذاله دي دواړو څخه ديوي نكاح هم په موكل باندي لازمه نه ده ولى چې ددواړودنكاح په لازمولوكې دموكل دامر مخالفت راځي اودكومې يوې غيرمعينې دنكاح په لازمولوكې دنكاح هيڅ فائده نشته ځكه چې دا صورت حلت وطى ته مفيدنه دى اوكه يوه متعينه كړي نوداهم جائزنه ده ولى چې په دي صورت كې ترجيح بلامرجح راځي .

(۷۰)قوله لابامة اى لايكون المامور بالنكاح مخالفابتزويجه الامة .يعني په مذكوره بالاصورت كې كه وكيل دموكل نكاح له مينځې سره وكړه نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددانكاح جائزده په دي شرط چې وكيل له خپلې مينځې سره نكاح نه وي وركړي ولى چې موكل لفظ دامراة ذكركړى دى كوم چې ازادي اومينځې دواړوته شامل دى او څه تهمت هم نشته ځكه چې مينځه دوكيل نه ده دغيرده .

ف:حال داچې دصاحبينوپه نزدداصورت هم جائزنه دى مګرداچې په كف كې نكاح وروكړي ولى چې توكيل مطلق دى اومطلق متعارف ته راجع كيږي ومتعارف په كف كې نكاح كول دي نه په غيركف كې .

دصاحبينوقول راجع دى لمافى الدرالمختار:(امره بتزويج امراة فزوجه امة جاز)وقالالايجوز وهواستحسان ملتقى بتعاللهداية وفى شرح الطحاوى وقولهمااحسن للفتوى واختاره ابوالليث (الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ۳۵۲/۲)

## بَابُ الْمَهْرِ

داباب دمهرپه بيان كې دى

کله چې مصنف رحمه الله له رکن نکاح ،شرط نکاح اوبمعنی الشرط (یعنی کفاءت )له بیان څخه فارغ شونواوس دمهر احکام بیانوي ولی چې دمهرموجب عقدنکاح دی نومهردعقدنکاح حکم شواوحکم دشي له شي څخه وروسته وي. اومهرهغه مال ته ویل کیږي چې ښځه دعقدنکاح یاوطی بشبه په وجه سره دهغه مستحقه کرځي .مهرته صداق ،نحله، اجر، فریضه ،علیقه ،اوعقرهم ویل کیږي .

(۷۱)صَحَّ النِّكَاحُ بِلَا ذِكْرِهِ (۷۲)فَإِنْ سَمَّاهَا أَوْ دُونَهَا فَلَهَا عَشَرَةٌ بِالْوَطْءِ أَوِ الْمَوْتِ (۷۳)وَبِالطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُولِ يَتَنَصَّفُ (۷۴)وَإِنْ لَمْ يُسَمِّهِ أَوْ نَفَاهُ فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا (۷۵)وَالْمُتْعَةُ إِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الْوَطْءِ (۷۶)وَهِيَ دِرْعٌ وَخِمَارٌ وَمِلْحَفَةٌ

**ترجمه** :صحیح ده نکاح بلاذکرمهر ،اولږترلږه مهرلس درهمه دی ،نوکه یې مهرلس درهمه یاله دې څخه لږمقررکونوښځې لره لس درهمه دي دوطی یامرګ یاخلوة په صورت کې ،اودطلاق قبل الوطی په صورت کې مهرنیمایې پاتې کیږي ،اوکه یې مقررنه کومهریایې نفی کونوښځې لره به مهرمثل وي که خاوندوطی وکړه یامړشو ،اومتعه ده کې ده طلاق ورکړمخکې تروطی کولو ،اوهغه قیمص ،اوپړونی اوڅادرده .

**تشریح** :(۷۱)په نکاح کې یې مهرمقررکړنوداصحیح ده اوکه یې دمهرله مقررکولوڅخه بغیرنکاح وکړ نوداهم صحیح ده ولی چې دالله تعالی ارشاد﴿ فانكحواماطاب الخ ﴾کې دنکاح ذکردی اوپه لغت کې نکاح انضمام اوازدواج ته ویل کیږي اودامعنی په متناکحینوسره پوره کیږي نوکه موږدمهرشرط ولګاوو نوپرنص به زیادت راشي کوم چې صحیح نه ده .البته مهرشرعاًواجب دی لیکن داوجوب دصحت نکاح لپاره نه دی بلکه دشرافت محل (یعنی شرافت بضع )دظاهره کولولپاره دی لهذادصحت نکاح لپاره دمهرذکرکولوضرورت نشته .

(۷۲)دمهراقل مقداراحنافوپه نزدلږترلږه لس درهمه دی یاهغه شی چې دهغه قیمت دعقدپه وخت کې لس درهمه وي لقوله ﷺ﴿ لَا مَهْرَ أَقَلَّ من عَشَرَةِ دَرَاهِمَ ﴾(له لسودرهموڅخه کم مهرنشته ). همدارنګه مهردشریعت حق دی دبضع دشرافت دظاهره کولولپاره لهذادومره مقداربه متعینوي چې په هغه سره شرافت بضع ظاهره شي نوموږولیدل چې دسرقې نصاب لس درهمه دی چنانچه په لس درهمه غلاکولوباندی لاس پرې کیږي نومعلومه شوه چې دانسان دعضویعنی لاس لږترلږه قیمت لس درهمه دی نوپه همدې په قیاسولوسره په نکاح کې هم دملک بضع قیمت کم ازکم لس درهمه مقررکړل شو .

**ف**:دامام شافعی اوامام احمد رحمهما الله تعالی په نزدهرهغه شی کوم چې په بیع کې ثمن جوړیدلی شي هغه په عقدنکاح کې مهرجوړیدلی شي لحدیث جابر رضی الله عنه ﴿ انه ﷺ من أَعْطَى في صَدَاقِ امْرَأَةٍ مِلْءَ كَفَّيْهِ سَوِيقًا او تَمْرًا فَقَدْ اسْتَحَلَّ ﴾(یعنی چاچې دښځې په مهرکې یوموټ ستواداء کړل یایې خرماوي اداء کړي نوده دابښځه خپل ځان ته حلاله کړه ).احناف ځواب ورکوي چې داروایت خویاپرمهرمعجل محمول دی اویانبی کریم ﷺ دمتعه په باره کې فرمایلې دي اومتعه منسوخه ده لهذاداهم منسوخ دی .

## دمهر فاطمی بیان

ف:دنبی کریم ﷺ دصاحاوادی حضرت فاطمه رضی الله عنها مهرپنځه سوه درهمه وو ............دموجوده اوزانوپه اعتبارسره مفتی محمدشفیع صاحب رحمه الله دا۱۳۱تولې او۳ماشوسپینوزروسره برابرکړی دی ..........کوم چې ګرام دموجوده پیمانې په لحاظ سره له یوکلو۵۳۰ګرامه اونهه سوه ملی ګرامو(۱۰۵۳۰۰۹۰۰)سره برابرېږي .داهم بایدپه خیال کې وي چې نن صباد۱۲ګراموتوله مروجه نه ده بلکه دلس ګرامه تولې په حساب سره دسپینواوسروزروخریداوفروخت کیږي ،په دي لحاظ سره مهرفاطمی تقریبا۱۵۴تولې سپین زرکیږي .(جدیدفقهی مسائل:۱/۲۸۶)

(۷۳)که دکومې ښځې لپاره مهرلس درهمه مقررشويیاخاوندله دي سره وطی وکړه یایې خلوة صحیحه وکړیاله دواړوڅخه یومړشونودښځې مهربه لس درهمه وي ولی چې لس درهمه دمهرکیدلو لپاره صالح دي اوپه اولنیودوو صورتونوکې مبدل یعنی دبضع سپارل متحقق شوي دي اودمبدل په سپارلوسره بدل واجبیږي لهذااوس لس درهمه واجب دي .اوپه دریم صورت کې هم لس درهمه واجب دي ولی چې دمرګ په سبب سره شی خپلې انتهاء ته رسیږي اوشی چې کله خپلې انتهاء ته ورسیږي نوله خپلوټولواحکامواو مواجبوسره متقرراو موکدکیږي اودنکاح په احکاموکې مهرهم دی لهذادمرګ په وجه سره داهم ثابتیږي .همداشان که یې له لس درهمه څخه کم مقررکړنوکه خاوندقبل الدخول مړشو یایې دخول وکړیایې خلوة صحیحه وکړنوپه دي صورتونوکې به هم مهرلس درهمه وي ولی چې ترلس درهمه کم مقررکول دحق شرع په وجه سره فاسددي اوحق دشرع په لس درهمه پوره کیږي لهذالس درهمه به پوره کیږي دزیادت ضرورت نشته .

(۷۴)وکه دلس یاترلس درهمه دکم مهرمقررکولوپه صورت کې قبل الوطی خاوندطلاق ورکړنواوس به مهردلس درهمو نصف یعنی پنځه درهمه وي ولی چې ټول مهرلس درهمه وو اودطلاق قبل الدخول په صورت کې نصف مهرلازمیږي اودلسو نصف پنځه دي لهذاپنځه درهمه به ورکوي .

**الغاز**:ای امرأةاخذت ثلاثةمهورمن ثلاثةازواج فی یوم واحد؟

**قل**:امرأة حامل طلقت ثم وضعت فلهاکمال المهرثم تزوجت وطلقت قبل الدخول ثم تزوجت فمات من یومه فاستحقت کمال المهر.(الاشباه والنظائر)

(۷۵)که چاله یوي ښځې سره نکاح وکړه مګرددي لپاره یې دمهرهیڅ ذکرونه کړیایې داشرط ولګاوو چې دي لره به هیڅ مهرنه وي نواوس که خاوندپه دي دخول وکړیاقبل الدخول احدالزوجین مړشونوښځې لره به مهرمثل وي ولی چې حضرت علقمه نقل کوي چې له حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه پوښتنه وشوه ،چې کوم کس له کومې ښځې سره نکاح وکړي بیاله دخول څخه وړاندي وفات شي حال داچې ښځې لره یې مهرنه وي مقرکړی ،حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه وفرمایل:چې زمارأیه داده چې دي لره به مهرمثل وي ،پردي حضرت معقل بن سنان اشجعی رضی الله عنه ولاړشواوویې ویل زه ګواهی ورکوم چې نبی کریم ﷺ دبروه بنت واشق لپاره همداحکم فرمایلی وو کوم چې تاوفرمایو .

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزددنفس عقدپه وجه سره هيڅ نه واجبيږي داابتداء دهغه نفی کولی شي لکه څرنګه چې انتهاء دي ته حق اسقاط حاصل دی .احناف وايې چې مهرابتداء دشريعت حق دی اوانتهاء دښځې حق دی لهذا ښځه ابتداء دمهر نفی نشې کولی هوبقاءً دابرأ (خاوندله مهرڅخه بری کول) حق لري.

(۷۶)قوله والمتعة ای وتجب المتعة ان طلقهاالخ ،يعنی که په مذکوره بالادووصورتونو (په کوم کې چې مهرمقررنه وي ياپې دمهرنفی کړي وي )کې خاوندښځې ته له دخول اوخلوة څخه وړاندي طلاق ورکړ نوښځې لره به متعه واجبه وي ولی چې د الله تعالی له قول﴿ مَتِّعُوهُنَّ ﴾(متعه ورکړي دوئ ته )څخه همدا متعه مراد ده اوامردوجوب لپاره وي لهذا متعه واجبه ده.

(۷۷)متعه دري جامې دي قيمص ،پړونی په کوم چې سرپټوي ،اوڅادرکوم چې له سرڅخه بياترپښوپوري وي همداله حضرت عائشې رضي الله عنها اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه مروی ده .

ف:اوداجامې دهغې درجې وي کومه چې ددي ښځې په شان ښځې يې په تن کوي ليکن دومره به ګرانه نه وي چې له نصف مهرمثل څخه زائدي شي ولی چې متعه دمهرمثل خليفه ده اونصف مسمی اقوی ده بياهم پرهغه اضافه نشي کيدای نوپه متعه کې به په طريقه اولی سره په نصف مهرمثل اضافه نه وي . اونه به دومره ارزانه وي چې له پنځودرهموڅخه کم وي ولی چې لږترلږه مهرلس درهمه دی دکوم چې نصف پنځه درهمه دي .

(۷۸)ومافرض بعدالعقدأوزيدلاَيَتَنَصَّفُ(۷۹)وَصَحَّ حَطُّهَا(۸۰)وَالْخَلْوَةُ بِلاَمَرَضِ أَحَدِهِمَاوَحَيْضٍ وَنِفَاسٍ وَإِحْرَامٍ وَصَوْمِ فَرْضٍ كَالْوَطْءِ وَلَوْ مَجْبُوبًاأوعِنِّينًااوخصيًا(۸۱)وَتَجِبُ الْعِدَّةُ فِيها(۸۲)وَتُسْتَحَبُّ الْمُتْعَةُ لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ إِلاَّ لِلْمُفَوِّضَةِ قَبْلَ الْوَطْءِ

**ترجمه** :اوکوم شی چې مقررکړل شي له عقدڅخه وروسته يازائد کړای شې نو دهغه تنصيف به نه کيږي ، اوصحيح دی د ښځې مهرکمول ،اوخلوة له مرض ،حيض ،احرام اوصوم فرض څخه بغيردوطی په شان دی که څه هم مقطوع الذکروي ،يا نامردوي ياخصی وي ،اوواجب دی عدة په دوئ کې ،اومستحبه ده متعه هري مطلقې لره مګرمفوضې ته له وطی څخه وړاندي .

**تشريح** :(۷۸)که يې له عقدنکاح څخه وروسته مهرمقررکړياله عقدنکاح څخه وروسته په مقرره مهرکې خاوندزيادت وکړبياخاوندقبل الدخول طلاق ورکړنودطرفينوپه نزدبه ددي زائدمهرتنصيف نه کول کيږي بلکه په اول صورت کې به متعه ورکول کيږي اوپه دوهم صورت کې به بوقت عقدچې کوم مهرمقررشوی وو دهغه نصف ورکول کيږي حال داچې دامام ابويوسف رحمه الله په نزدله اصل مهرسره به ددي زيادت تنصيف هم کول کيږي ولی چې دده په نزدمفروض بعدالعقدداسې دی لکه مفروض فی حالة العقد،دطرفينوپه نزدتنصيف په حالت عقدکې له مقررشوي سره خاص دی لهذاله حالت عقدوروسته چې کومه اضافه شوي ده دهغې تنصيف به نه کيږي .

ف:دطرفينوقول راجح دی :لمافی الشامية :(ويجب نصفه )ای نصف المهرالمذکوروهوالعشرة ان سماها اودونها اوالاکثر منهاان سماهاوالمتبادرالتسمية وقت العقدفخرج مافرض اوزيدبعدالعقدفانه لايتنصف کالمتعة(ردالمحتار:۲/۳۶۰)

(۷۹)دعقدنکاح پروخت چې کوم مهرمقررشوی دی که ښځې له خپل دي مهرمقررڅخه څه کم کويايې ټول مهردزوج له ذمې څخه ساقط کونوداصحيح ده ولی چې مهربقاء دښځې حق دی اوداکمی

ښځې دبقاء په دوران کې کړي ده او هرچاته په خپل خالص حق کې دتصرف کولو حق حاصل دی لهذا ښځې ته به هم داحق حاصل وي چې داله خپل مهر څخه کم کړي یاټول ساقط کړي.

ف:که کوم کس له وطی کولو څخه وروسته ښځې ته طلاق ورکړي نوبوقت عقدچې کوم مهرمقرر شوي وو هغه به مطلقې ته ورکوي او که یې له وطی څخه وړاندې طلاق ورکړنونصف مهربه ورکوي.

(۸۰)دخلوة معنی ده په تنهائي کې دزوجینو یوځای کیدل ،یاخلوة پردوه قسمه دی خلوت صحیحه ،خلوت غیرصحیحه ، خلوت صحیحه هغه دی چې له جماع څخه هیڅ قسم مانع موجودنه وي . مصنف رحمه الله څلورموانع ذکرکړي دي (۱)له زوجینو څخه کوم یودومره ناروغ وي چې دجماع قابل نه وي نوپه داسې صورت کې که زوجین په تنهائي کې سره یوځای شې نوداخلوت صحیحه نه دی. (۲)ښځه دحیض یانفاس په حالت کې وي نوپه داسې صورت کې دزوجینو یوځای کیدل خلوت صحیحه نه دی (۳)له زوجینو څخه کوم یوه دحج فرض یانفل یاعمري احرام تړلی وي نوپه داسې صورت کې هم خلوت صحیحه نه دی(۴)له زوجینو څخه کوم یوه درمضان روژه نیولې وي نوبیاهم په تنهائي کې ددوئ یوځای کیدل خلوة صحیحه نه دی .اوخلوت غیرصحیحه هغه دی چې له جماع څخه کوم مانع موجودوي.

نوکه زوجینوخلوت صحیحه وکویعنی له مذکوره بالاموانعو څخه بغیرزوجینوپه تنهائي کې ملاقات وکړنودادوطی په حکم کې ده لهذااوس که خاوند طلاق ورکړنوپوره مهربه ورکوي که څه هم زوج مجبوب (دکوم نارینه چې عضوتناسل له بیخه څخه پرې وي هغه ته مجبوب ویل کیږي)یاعنین (عنین هغه نارینه ته ویل کیږي دچاچې عضوتناسل موجودوي لیکن هغه له ښځې سره په جنسی تعلق باندې قدرت نه لري )یاخصی(خصی هغه کس ته ویل کیږي دچاچې دخایوګردې ایستل شوي وي )وي .دپوره مهرورکولو وجه داده چې ښځې دموانعوپه رفع کولوسره مبدل (یعنی منافع بضع )خاوندته حواله کړي اودښځې په قدرت کې همدومره وو.لهذادښځې حق په بدل (یعنی مهر)کې ثابتیږي .

ف:البته دزوج دمجبوب والی په صورت کې دصاحبینوپه نزدښځې لره نصف مهردی ولی چې مقطوع الذکر د مریض په نسبت ډیرعاجزدی ځکه چې مریض کله ناکله پرجماع قادرکیدی شي لیکن مقطوع الذکرپرجماع بالکل قدرت نه لري لهذاداخلوت صحیحه نه دی نودطلاق قبل الدخول په وجه سره به دښځې لپاره نصف مهروي.

ف:دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لماقال المفتی غلام قادر النعمانی فی القول الراجح:ان القول الراجح هو قول ابی حنيفة ..............قال فی الهندية وخلوة المجبوب صحيحة عندابی حنيفة وخلوة العنين والخصى خلوة صحيحة كذافى الذخيرة (القول الراجح:۱/۲۷۱)

(۸۱)اودپورته ذکرشویو موانعوپه شتون کې دخاوندله ښځې سره دخلوت کولوپه صورت کې که خاوندطلاق ورکړنواحتیاطاپرښځه باندې عدة واجبه ده ولی چې دعلوق توهم موجوددی بیاخواه که خلوة صحیحه وي که غیر صحیحه،البته دخلوة غیرصحیحه په صورت کې مهرواجب نه دی ولی چې مهرمال دی دکوم په ایجاب کې چې احتیاط مناسب نه دی.

ف:خلوة صحيحه په څوځايونوكې دوطی په حكم كې دی .(۱)دښځې پوره مهرواجبيږي .(۲)كه ددي ښځې بچی پيداشې نوله دي خاوند څخه به ثابت النسب وي .(۳)دطلاق وغيره په صورت كې پرښځې باندي عدة واجبه ده .(۴)دښځې نفقه اوسكنی واجبه ده .(۵)دعدة په دوران كې ددي ښځې له خوريااله څلورمې ښځې سره نكاح كول جائزنه ده .(۶)له مينځې سره نكاح جائزه نه ده .(۷)په طلاق وركولوكې به ددي په حق كې هم دطلاق دوخت درعايت كولوحكم دی .څوځايونه داسې دي چې په هغوكې خلوة دوطی په حكم كې نه دی .(۱)دخلوة په وجه سره داښځه محصنه نه شمارل كيږي لهذا دزناكولوپه صورت كې پردي ښځې باندي دشادی شده حدنه جاري كيږي .(۲)ددي ښځې له لورسره نكاح كول حرامه نه ده .(۳)له دي څخه وړاندي خاونددي ته دري طلاقه وركړي وو نومحض دخلوة په وجه سره دااول خاوندته نه حلاليږي . (۴)له طلاق رجعی څخه وروسته رجعت كيږي خلوة رجعت نه شمارل كيږي (۵)دخلوة په عدة كې كه خاوندوفات شونوښځه به ميراث مستحقه نه وي .(۶)لمونځ ،روژه ،احرام ، اعتكاف ،وغيره عبادتونه په خلوة سره نه فاسديږي.

(۸۲)دطلاق په وجه سره دپيداشوی وحشت ددفع كولولپاره هري مطلقې ته متعه وركول مستحب ده مگرمفوضې (مفوضه هغه ښځه ده كومې چې خپل ځان خاوندته سپارلی وي اوددي نكاح بغيردمهرله متعين كولوشوي وي )ته كه خاوندقبل الدخول طلاق وركړنوددي لپاره متعه مستحبه نه ده بلكه واجبه ده لقوله تعالى﴿ وَمَتِّعُوهُنَّ على الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ ﴾(اودوئ ته څه خرچه وركړئ په قدرت والاباندي دهغه موافق ده اوپرتنگې والاباندي دهغه موافق)، متعوهن ،دامرصيغه ده اوامردوجوب لپاره وي ،همدارزدي لره متعه په دي وجه هم واجبه ده چې دامتعه دنصف مهرمثل بدل ده كمامر.

ف:مطلقه پرڅلورقسمه ده .(۱)مطلقه غيرمدخول بهاوي اوددي لپاره مهرهم نه وي مقررشوی دامذكوره بالاصورت دی په كوم كې چې دښځې لپاره متعه واجب ده .(۲)مطلقه غيرمدخول بهاوي اوددي لپاره مهرمقررشوی وي ددي لپاره دمتعې استحباب مختلف فيه دی شوافع دوجوب قائل دي اواحناف داستحباب .(۳)مطلقه مدخول بهاوي ليكن دي لره مهرمقررنه وي .(۴)مطلقه مدخول بهاوي اودي لره مهرهم مقرروي ددي دواړوقسمونوته متعه مستحب ده لقوله تعالى ﴿ وللمطلقات متاع بالمعروف ﴾ (يعنی مطلقه ښځولره متعه شته دشرعی دستورمطابق ).

(۸۳)وَيَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ فِي الشِّغَارِ (۸۴)وَخِدْمَةُ زَوْجٍ حُرٍّ لِلْأَمْهَارِ وَتَعْلِيمُ الْقُرْآنِ (۸۵)وَلَهَا خِدْمَتُهُ لَوْ عَبْدًا

**ترجمه** :اوواجب دی مهرمثل په نكاح شغاركې ،اودازادخاونددخدمت په صورت كې دمهرپه وجه اودتعليم قران په صورت كې ،اوښځې لره خدمت دی كه خاوندغلام وو .

**تشريح** :(۸۳)شغار،له بلدة شاغرة ،په معنی دبلدة خالية څخه دی ،په اصطلاح كې شغاردادی چې كوم كس دخپلې لورياخورنكاح له بل سره په دي شرط وكړي چې هغه بل به دخپلې لورياخورنكاح له ده سره كوي په كوم كې چې احدالعقدين دهغه بل عوض وگرځول شې داسې نكاح ته دنكاح شغارويلوجه داده چې داهم له مهرڅخه خالی وي ،په اردوكې دي ته ،وټه سټه ويل كيږي .داحنافوپه نزدادشرط فاسددی په ښځوكې دهري يوي لپاره مهرمثل دی ولی چې داسې شی يې مهرجوړكړی دی كوم چې دمهر

جوړيدلوصلاحيت نه لري اوقاعده ده چې كوم شى دمهرجوړيدلوصلاحيت نه لري كه هغه مهرجوړكړاى شي نوعقدنكاح صحيح دى اومهرمثل به واجب وي .

ف:دامام شافعى رحمه الله په نزدنكاح شغارباطله ده لقوله ﷺ ﴿ لا شغار في الإسلام ﴾(يعنى دنكاح شغارهيڅ ګنجائش په اسلام كې نشته ).امام شافعى رحمه الله ته ځواب وركړل شوى دى چې دحديث شريف مطلب دادى چې دجاهليت دعادت مطابق نكاح له تسميه مهرڅخه دخالي پريښودلو ګنجائش نشته ،له عين نكاح څخه منع كول مقصودنه دي ،يادا حديث په كراهت محمول دى .

(۸۴)قوله وخدمة زوج حراى يجب مهر المثل في التزويج على خدمة زوج حر ،يعنى كه كوم ازادكس له كومې ښځې سره نكاح وكړه اوښځې ته يې وويل چې تريوه كال پورې به زه ستاخدمت كوم همدا ستامهردى ، اويابه زه تاته دقرآن مجيدتعليم دركوم همدا ستامهردى نونكاح جائزده اوښځې لره مهرمثل دى ولى چې دازادانسان خدمت اوتعليم قران منافع دي مال نه دى حال داچې په عقدنكاح كې ابتغاء بالمال (دمال په ذريعه سره طلب كول )مشروع دي لقوله تعالى ﴿وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ ﴾(اوحلال دي تاسې لره ټولې ښځې له دي ماسوا په دي شرط چې طلب كړى دوئ دخپلو مالونو په بدله كې ).

ف:دامام شافعى رحمه الله په نزددازادانسان خدمت اوتعليم قران په نكاح كې مهرجوړول صحيح دي ولى چې نكاح عقدمعاوضه دى لهذا كوم شى چې معوض جوړيدى شي هغه په عقدنكاح كې عوض هم جوړيدى شي ترڅودمعاوضې معنى متحققه شي اوڅرنګه چې خدمت اوتعليم قران دواړه معوض دي يعنى ددوئ عوض اخيستل كيږي لهذا دوئ دواړه عوض يعنى په نكاح كې مهرهم جوړيدى شي ، نو داداسې شوه لكه چې دبل ازادكس خدمت مهرجوړكړاى شي .

(۸۵)كه غلام دخپل مولى په اجازت سره له ازادي ښځې سره نكاح وكړه اومهريې يوكال خدمت مقرركړنوداجائزده چې ښځه دخپل مهرپه طورله ده څخه يوكال خدمت واخلي ولى چې دغلام خدمت مال دى ولى چې داتسليم رقبې ته متضمن دى لهذا داسې خدمت بطورمهرمقرركول صحيح دى.

(۸۶)وَلَوْ قَبَضَتْ أَلْفَ الْمَهْرِ وَوَهَبَتْ لَهُ فَطَلَّقَتْ قَبْلَ الْوَطْءِ رَجَعَ عَلَيْهَا بِالنِّصْفِ (۸۷)فَإِنْ لَمْ تَقْبِضْ الْأَلْفَ (۸۸)أَوْ قَبَضَتْ النِّصْفَ وَوَهَبَتْ الْأَلْفَ (۸۹)أَوْ وَهَبَتْ الْعَرْضَ الْمَهْرَ قَبْلَ الْقَبْضِ أَوْ بَعْدَهُ فَطَلَّقَتْ قَبْلَ الْوَطْءِ لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهَا بِشَيْءٍ

**ترجمه**:اوكه ښځې قبض كړي دمهرزردرهمه اوهبه يې كړي خاوندته بياداطلاقه شوه له وطى څخه وړاندي نوخاوندبه رجوع كوي په ښځې باندي دنصف مهرپه باره كې ،اوكه ښځې قبضه نه وي كړي په زرو ،يايې قبضه كړي وي پرنصف اوهبه كړي يې وي زرياباقى مانده ،يايې هبه كړدمهرسامان له قبضې څخه وړاندي يا له قبضې څخه وروسته بياداطلاقه شوه له وطى څخه وړاندي نورجوع به نه كوي خاوندپردي دهيڅ شى په باره كې .

**تشريح** :(۸۶)كه چاله ښځې سره په يوزردرهمه باندي نكاح وكړه اوښځې په دي يوزردرهمه باندي قبضه وكړه بيايې واپس خاوندته دايوزردرهمه هبه كړل بياخاوندقبل الدخول دي ته طلاق وركړ نواوس به خاوندپنځه سوه درهمه له ښځې څخه بيرته اخلي ولى چې خاونددطلاق قبل الدخول په وجه سره دښځې په قبض كړي مهركې دنصف مستحق دى اودښځې په هبه كولوسره دخاوندطرف ته بعينه هغه نه دي رسيدلې

دکوموچې خاوندمستحق شوی دی ولی چې زموږپه نږددراهم اودنانیرپه عقوداوفسوخو کې په متعین کولوسره نه متعین کیږي نوګویاښځې له مقبوض مهرڅخه علاوه نور مال خاوندته هبه کړی دی لهذاخاوندلره دښځې له طرف څخه دهبه شوی ماسواله ښځې څخه دمزیدنصف مهر داخیستلو حق حاصل دی.

(۸۷)اوکه ښځې بغیرله قبض کولودازر درهمه هبه کړل یاخاوندقبل الدخول طلاق ورکړنوپه زوجینو کې به استحسانا یوهم په هغه بل باندي د هیڅ شي رجوع نه کوي که څه هم دقیاس تقاضاخوداده چې خاونددنصف مهرپه باره کې رجوع وکړي ولی چې ښځې بلاقبضه له ټول مهرڅخه خاوندبری کړنوخاوندته چې کوم یوزرسالم پاتې شول دایوزرله هغه څخه غیردي دکوم چې خاوندقبل الدخول طلاق په وجه سره مستحق شوی دی یعنی له نصف مهرڅخه بری کیدل لهذاښځه به له دي نصف مهرخاوندته له اداء کولوڅخه بری نه وي .داستحسان وجه داده چې کله ښځې خاوندله ټو ل مهرڅخه بری کړنوخاوندته بعینه هغه ورسیدل دکوم چې هغه دطلاق قبل الدخول په وجه سره مستحق شوی وو ولی چې په طلاق قبل الدخول سره خاوندله نصف مهرڅخه بری ذمه کیږي نوکله چې ښځې دی له ټول مهرڅخه بری الذمه کونوله نصف مهرڅخه په طریقه اولی سره بری الذمه شو.

(۸۸)اوکه ښځې له ټول مهریعنی زردرهمه څخه په پنځه سوه درهمه قبضه وکړه اوبیایې خاوندته یوزرمقبوض اوغیرمقبوض دواړه هبه کړل یایې صرف غیرمقبوض هبه کواوخاوندقبل الدخول طلاق ورکړنوپه زوجینوکې به یوه لره هم په هغه بل باندي درجوع حق نه وي ولی چې دخاوندمقصود بلاعوض نصف مهرله خپل ځان سره سالم پاته کول دي اودامقصودله طلاق څخه وړاندي حاصل شوی دی لهذاله طلاق څخه وروسته به درجوع مستحق نه وي .دصاحبینوپه نزدبه دمقبوض نصف په نصف باندي خاوندپرښځه رجوع کوي لکه چې دټول مهردقبض کولوپه صورت کې دنصف په باره کې رجوع کولی شي صاحبین بعض پرکل قیاسوي.

ف:دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمختار:(وان تقبضه اوقبضت نصفه لوهبت الکل)فی الصورة الاولی(اومابقی) وهوالنصف فی الثانیة(او)وهبت(عرض المهر)کثوب معین..........الی ان قال:لارجوع لحصول المقصود،قال العلامة ابن عابدین:لانه وصل الیه عین مایستحقه بالطلاق قبل الدخول(الدرالمختارمع الشامیة:۲/۳۷۴)

(۸۹)اوکه یې داسې شی مهرجوړکړکوم چې په متعین کیدلوسره متعین کیږي مثلاحیوان ،جامه اوغیره بیاښځې واپس خاوندته هبه کوخواه که ښځې قبضه پرې کړي وي اوکه یې نه وي کړي اوس خاوندله دخول څخه وړاندي طلاق ورکړنوخاونداستحساناله ښځې څخه هیڅ شي هم نشي اخیستلی دقیاس تقاضا خوداده چې دعین مهردنصف واپس کول واجب وي کوم چې موجودنه دی ولی چې دلته خاوندلره دمهرسالم والی دښځې په بری کولوسره حاصل شواوخاونددنصف مهر مستحق وو دطلاق قبل الدخول په وجه سره ،لهذاښځه به له دي څخه بری نه وي دکوم چې خاوند مستحق دی نوخاوندلره به په نصف مهرکې درجوع کولوحق حاصل وي . داستحسان وجه داده چې دخاوندحق دطلاق پروخت دنصف مقبوض سالم والی دی

اوخاوندته خودښځې له طرفه عين مهررسيدلی دی لهذا دخاوند دمقصود دحاصليدوپه وجه سره به ده لره دګه اخيستلوحق نه وي .

(۹۰)وَلَوْ نَكَحَهَا بِأَلْفٍ عَلَى أَنْ لَا يُخْرِجَهَا أَوْ عَلَى أَنْ لَا يَتَزَوَّجَ عَلَيْهَا أَوْ عَلَى أَلْفٍ إِنْ أَقَامَ بِهَا وَعَلَى أَلْفَيْنِ إِنْ أَخْرَجَهَا فَإِنْ وَفَى وَأَقَامَ فَلَهَا الْأَلْفُ (۹۱)وَإِلَّا فَمَهْرُ الْمِثْلِ

**ترجمه**:اوكه يې له ښځې سره نكاح وكړه دزرورو پوپه عوض په دې شرط چې دابه نه باسي له وطن څخه ياپردې شرط چې له بلې ښځې سره به نكاح نه كوي پردې ياپه زرباندې كه يې په وطن كې اوسوله اوپه دوه زره كه يې له وطن څخه وايستله نوكه ده شرط پوره كواوداېې په وطن كې واوسوله نودې لره زردرهمه دي ،كه نه نو مهرمثل به وركوي .

**تشريح**:(۹۰)كه كوم كس له كومې ښځې سره نكاح وكړه اوروپۍ يې مهرمقرركړاوښځې داشرط ولګاوو چې خاوندبه دادې له ښارڅخه نه باسي يادې په موجودوالی كې به له بلې ښځې سره نكاح نه كوي اوياكه په همدې ښاركې پرېښوده نومهربه زردرهمه وي اوكه يې باهركړه نودوزره درهمه به وي نوكه خاوندشرط پوره كونوښځې لره به مسمى يعنى زردرهمه وي ولی چې زرروپۍ دمهرجوړيدلو صلاحيت لري اوښځه هم پرراضي ده .

(۹۱)قوله والافمهرالمثل ای وان لم يف بالشرط فلهامهرالمثل ،يعنی كه خاوندشرط پوره نه كوبلكه ددې په موجودوالی كې يې له بلې ښځې سره نكاح وكړه يايې ښځه ددې له ښارڅخه ويستله يايې په دريم صورت كې ښځه ددې له ښارڅخه ويستله دكوم په باره كې چې ښځې ويلې وو چې كه يې له دې ښارڅخه ويستله نومهربه دوه زره وي نوښځې لره مهرمثل دی ولی چې خاوند دعقدپروخت يوداسې شئ ذكر كړی دی چې په هغه كې دښځې نفع ده نودنفع دفوت.كيدلوپه وجه سره په يوزرباندې دښځې رضامندی منعدمه شوه لهذاددې لپاره به مهرمثل مكمل كيږي .

**ف**:په دريم صورت كې دامام ابوحنيفه رحمه الله اوصاحبينورحمهماالله تعالى ترمنځ اختلاف دی ،دامام صاحب په نزدشرط اول جائزدی اوشرط دوهم جائزنه دی يعنى كه يې مسمى په ښاركې واوسوله نوزر درهمه مهربه وي اوكه يې ويستله نومهرمثل به وي ،دصاحبينوپه نزددواړه شرطونه جائزدي لهذا د اقامت په صورت كې به مهرزردرهمه وي اوداخراج په صورت كې به مهردوه زره وي ولی چې دا داسې ده لكه چې كوم كس په دووشيانوكې دهريوه قيمت معلوم كړي اووايې چې په ددې دووشيانوكې چې كوم يوهم وغواړم هغه به اخلم نوهغه په دواړوكې چې كوم يووغواړي، هغه دې دهغه په قيمت سره واخلي.دامام صاحب دليل دادی چې دښځې په ښاركې داوسولوپه صورت كې يوه تسميه منجزه او دوهمه معلقه ده نوپه يوه وخت كې دوه تسميې نه وي اوددې داخراج په صورت كې دوه تسميې جمع كيږي دكوم په وجه سره چې مهرمجهول ګرځي اودجهالت په وجه سره تسميه فاسديږي لهذا مهرمثل به واجب وي.باقی داقامت په صورت كې يوه تسميه اوداخراج په صورت كې دوه تسميې په دې وجه سره جمع كيږي چې معلق بالشرط له شرط څخه وړاندې نه موجوديږي اومنجزدمعلق په وجودسره نه منعدم كيږي لهذاددووتسميو اجتماع دشرط دوجودپه وخت كې موجوديږي له دې څخه وړاندې نه موجوديږي .

**ف**:دامام ابو حنيفه رحمه الله قول راجح دى لمافي الدر المختار:نكحها(على الف ان اقام بها وعلى الفين ان اخرجها فان وفى)بما شرط فى الصورة الاولى (واقام)بها فى الثانية (فلها الالف)..........(والا)يوف ولم يقم (فمهر المثل)لفوات رضاها بفوات النفع (الدر المختار على هامش ردالمحتار:۳۷۴/۲)

(۹۲)وَلَوْ تَزَوَّجَهَا عَلَى هٰذَا الْعَبْدِ اَوْ عَلَى هٰذَا الْاَلْفِ حُكِّمَ مَهْرُ الْمِثْلِ وَكَذَا اِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَى هٰذَا الْعَبْدِ اَوْ عَلَى هٰذَا الْعَبْدِ وَاَحَدُهُمَا اَوْكَسُ حُكِّمَ مَهْرُ الْمِثْلِ(۹۳)وَعَلَى فَرَسٍ اَوْ حِمَارٍ يَجِبُ الْوَسَطُ اَوْ قِيْمَتُهُ(۹۴)وَعَلَى ثَوْبٍ(۹۵)اَوْ خَمْرٍ اَوْ خِنْزِيْرٍ(۹۶)اَوْ عَلَى هٰذَا الْخَلِّ فَاِذَا هُوَ خَمْرٌ(۹۷)اَوْ عَلَى هٰذَا الْعَبْدِ فَاِذَا هُوَ حُرٌّ يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ

**ترجمه**:او که يې نكاح وكړه له ښځې سره پر دې غلام يا پر دې غلام باندې نو حاكم به كړځول كيږي مهر مثل لره ،او په خره باندې يا په آس باندې نو واجبيږي به درميانه يا دهغه قيمت ،او په جامې باندې ،يا په شرابو باندې يا په خنزير باندې ،يا په دې سركې باندې او حال دا چې هغه شراب وو ،يا په دې غلام باندې حال دا چې هغه ازاد وو نو واجبيږي به مهر مثل .

**تشريح** :(۹۲)كه چا ښځې ته د دوو غلامانو په باره كې وويل چې په مهر كې به دا غلام دركوم يا دا ،كوم يو يې متعين نه كو او د دواړو قيمت هم مختلف وو نو امام صاحب فرمايي چې دمهر مثل په ذريعه سره به فيصله كيږي يعنى كتل كيږي به چې دمهر مثل دلږ قيمت والاغلام څخه كم دى كه مساوى دى،يا دزيات قيمت والاغلام څخه زيات دى ،او يا كه د دواړو غلامانو د قيمت په منځ كې دى ،په اولنيو دوو صورتونو كې خو د ښځې لپاره دكم قيمت والاغلام دى ولى چې مهر مثل دلږ قيمت والاغلام څخه له لږوالى سره خاوند دې غلام په مهر كې په وركولو راضى شوى دى ،په دريم صورت كې دزيات قيمت والاغلام دى له دې څخه زيات به نه وي ولى چې دمهر مثل له ډير قيمت والاغلام څخه دزياتوالى باوجود ښځه د دې غلام په مهر كې په اخيستلو راضى شوي ده .او په څلورم صورت كې به ښځې ته مهر مثل وركول كيږي ولى چې اصل واجب مهر مثل دى او له مهر مثل څخه عدول دصحت تسميه په وخت كې وي او دلته په دوو غلامانو كې دترددا وشک په وجه سره جهالت پيدا شوى دى نو د دې جهالت په وجه سره تسميه فاسده شوه لهذا مهر مسمى به واجب نه وي لكه مهر مثل به وركوي ،حال دا چې صاحبين فرمايي چې په هر صورت كې به دلږ قيمت والاغلام وركوي ولى چې دلږ قيمت والاغلام يقيني دى په زائد كې تردد دى لهذا متيقن به واجب وي.

**ف**:دامام ابو حنيفه رحمه الله قول راجح دى لمافي ردالمحتار:(قوله حكم مهر المثل)هذا قوله وعندهما لها الاقل والمتون على الاول ورجح فى التحرير قولهما (ردالمحتار:۳۷۶/۲)

(**۹۳**)قوله وعلى فرس اوحمار اى لو نكحها على فرس اوحمار،يعنى كه چا له كومې ښځې سره نكاح وكړه او مهر يې يو داسې حيوان مقرر كو دكوم چې جنس معلوم وي مثلاً دا چې فرس دى يا بقر دى يا دحمار دى مگر د دې نوع او وصف يې بيان نه كو چې داعلى درجې فرس به وي يا اوسط يا دادنې درجې فرس به وي نو دا مهر مقرر كول صحيح دى او زوج لره اختيار دى چې هغه دمتوسط درجې حيوان وركوي او كه دمتوسط درجې دحيوان قيمت وركوي ،دا اختيار ځكه دى چې دحيوان متوسط والى په قيمت سره معلوميږي

لهذا دادا په حق کې قيمت اصل دی ،او دتسميې په اعتبار سره حيوان اصل دی ځکه چې تسميه پرده واقع شوې ده لهذا خاوند په دواړو کې کوم يو اختيار کولی شي.
ف: په متن کې داو لفظ دتشکيک لپاره نه دی بلکه دتنويع لپاره دی يعنې صرف نوع دفرس يې دمهر په طور باندې مقرر کويايې صرف نوع حمار مقرر کوولی چې که لفظ داو تشکيکيه شي نو بيا خودابعينه دتيرې شوې مسئلې صورت دی په کومه کې چې دابيان شو چې مهر مثل به فيصل جوړيږي.
(۹۴) قوله وعلی ثوب ای لو نکحها علی ثوب ،يعنې که چاله ښځې سره نکاح وکړه او مهريې جامه مقرره کړه او دجامې جنس او وصف يې بيان نه کو بس صرف دومره يې وويل چې جامه به درکوم نو ښځې لره به مهر مثل وي ځکه چې دلته دجامې جنس مجهول دی ولی چې جامې ډير جنسونه لري ،او که يې دجامې وصف او جنس بيان کو مثلا دايې وويل چې هروی جامه به درکوم نو دامهر مقرر کول صحيح دي خاوند لره دقيمت ياجامې ورکولو اختيار دی لماييناً.
(۹۵) قوله او خمر او خنزير ای لو نکحها علی خمر او خنزير ،يعنې که مسلمان کس له يوې ښځې سره نکاح وکړه او مهريې شراب ياخنزير مقرر کو نو دانکاح صحيح ده ولی چې وړاندې تيره شوه چې دمهر دنه ذکر کولو په صورت کې نکاح صحيح ده نو دفساد تسميه په صورت کې به په طريقه اولی سره صحيح وي.او په دې صورت کې لره مهر مثل دی ولی چې خمر او خنزير دمسلمان په حق کې مال متقوم نه دي او دغير مال ذکر کول داسې دی گويا هغه دمهرله ذکر کولو څخه ساکت دی او دسکوت په صورت کې مهر مثل واجبيږي.
ف: دامام مالک رحمه الله په نزد په مذکوره بالاصورت کې نکاح فاسديږي امام مالک رحمه الله نکاح په بيع باندې قياسوي .امام مالک رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې نکاح په بيع قياسول صحيح نه دي ولی چې بيع په شرط فاسد سره فاسديږي حال داچې نکاح په شرط فاسد سره نه فاسديږي.
(۹۶) قوله او علی هذا الخل ای نکحها علی هذا الخل الخ ،يعنې که يو کس له ښځې سره نکاح وکړه او دنکاح پروخت خاوند دسرکې طرف ته په اشاره کولو سره وويل چې په دې سرکه له تاسره نکاح کوم حال داچې هغه سرکه نه وه بلکه شراب وو نو دامام صاحب رحمه الله په نزد مهر مثل واجبيږي ولی چې هذا الخل کې اشاره او تسميه دواړه جمع شوي اوچيرته چې دادواړه سره جمع شي نو اشاره معتبره وي ولی چې يو شي ته په امتياز ورکولو کې اشاره ابلغه ده تر تسميه نو کله چې اشاره معتبره شوه نو گويا نکاح يې په شرابو وکړه او قاعده ده چې کله شراب مهر مقرر کړي نو مهر مثل واجبيږي.
(۹۷) قوله او علی هذا العبد الخ ای نکحها علی هذا العبد الخ ،يعنې که چاله يوې ښځې سره نکاح وکړه او بوقت نکاح خاوند ديو کس لورته په اشاره کولو سره وويل چې په دې غلام باندې له تاسره نکاح کوم حال داچې مشار اليه غلام نه وو بلکه ازاد شخص وو نو په دې صورت کې هم دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد مهر مثل واجبيږي ولی چې په دې صورت کې هم اشاره معتبره ده نو گويا نکاح يې په ازاد شخص وکړه او قاعده ده چې کله ازاد کس مهر وگرځول شي نو مهر مثل واجبيږي.

(۹۸) وَإِذَا أَمْهَرَ عَبْدَيْنِ وَأَحَدُهُمَا حُرٌّ فَمَهْرُهَا الْعَبْدُ (۹۹) وَفِي النِّكَاحِ الْفَاسِدِ إِنَّمَا يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ بِالْوَطْءِ وَلَمْ يَزِدْ عَلَى الْمُسَمَّى (۱۰۰) وَيَثْبُتُ النَّسَبُ وَالْعِدَّةُ

**ترجمه** :اوکه يې مهرمقررکو دوه غلامان حال دا چې په دوئ کې يوازاد وو نو ددي مهرصرف غلام دی ،او په نکاح فاسده کې واجبيږي مهرمثل په وطی سره اونه دي زياتيږي په مهرمسمی باندي ،او ثابتيږي نسب اوعدت .

**تشريح** :(۹۸)که خاوند دوو غلامانو ته اشاره وکړه ويې ويل چې په دي دوو غلامانو سره نکاح کوم حال دا چې په دوئ کې يو ازاد دی اودوهم غلام دی نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد په دوئ دووکې چې کوم يوغلام دی که دهغه قيمت له لس درهمه سره برابر يا زيات وو نوصرف همدا غلام به بطورمهرواجب وي ولی چې باقی مانده يوغلام دمال والی په وجه سره دمهرجوړيدلوصلاحيت لري لهذا همدا يوخوواجب دی اودمهرمسمی ووجوب له مهرمثل مقررکولو څخه مانع دی که څه هم مسمی کم هم وي .

**ف**:دامام ابويوسف رحمه الله په نزدکوم چې غلام دی هغه خوواجب دی اوکوم چې ازاد دی هغه چې غلام فرض کړي اوڅومره قيمت يې وي هغه هم پرخاوندواجب دی ولی چې که دادواړه حروای نودودواړو قيمت به واجبيدلای نوکله چې يوحرثابت شونودهمدي يوه قيمت به واجب وي .اودامام محمد رحمه الله په نزدغلام واجب دی ترپوره کولودمهرمثل پوري يعنی که مهرمثل دغلام له قيمت څخه زيات وي نومهرمثل به پوره کيږي .دامام محمد رحمه الله دليل دادی چې که دادواړه ازادوای نومهرمثل به واجبيدو نوکله چې يوغلام دی نوغلام واجبيږي ترپوره کولودمهرمثل پوري .

**ف**:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لماقال ابن عابدين في الشامية :(قوله ورجحه الکمال )والمتون علی قول الامام وفي القهستاني انه ظاهر الرواية(ردالمحتار:۲/ ۳۸۰)

(۹۹)له عقدنکاح څخه وروسته که خاوندښځې ته طلاق ورکړي يا قاضی ددوئ په منځ کې تفريق وکړي نوپه خاوندنصف مهرواجب دی ليکن که چا نکاح فاسده (نکاح فاسده هغه ده په کومه کې چې دنکاح له شرطونو څخه کوم شرط موجودنه شي مثلاً گواه نه وي يا يې اختين جمع کړي وي يا له وړاندي څخه دده څلورښځې موجودي وي )وکړه بيا قاضی ددوئ په منځ کې تفريق وکونوکه داتفريق قبل الوطی وي نودښځې لپاه مهرمثل نشته ولی چې په نکاح فاسده کې مهردمنافع بضع په استيفاء سره واجبيږي صرف په عقدنکاح سره نه واجبيږي .همداشان په خلوت سره هم مهرنه واجبيږي ځکه چې کله عقد صحيح نه دی نوخلوت به هم صحيح نه وي ولی چې له وطی څخه مانع يعنی حرمت موجوددی .هوکه تفريق بعدالوطی وي نومهرمثل واجبيږي ولی چې وطی له ضمان جابر يا حدزاجر څخه خالی نه وي حدخودشبه په وجه سره متعذردی لهذا مهر مثل متعين دی .مگردامهرمثل به زموږ په نزدله مهرمسمی څخه زائدنه وي حال دا چې دامام زفر رحمه الله په نزدمطلقامهر مثل واجب دی خواه که له مسمی څخه کم وي اوکه زائدوي .زموږدليل دادی چې کله مهرمسمی له مهرمثل څخه کم دی نوگويا ښځه دخپل حق په کمولو باندي په خپله راضی شوي ده دکوم چې دي لره اختيارهم شته .

(۱۰۰)قوله ويثبت النسب ای ويجب نسب ولد المولود في النکاح الفاسد ،يعنی دنکاح فاسدي په صورت کې چې کوم بچی پيداشي دهغه نسب به ثابت وي اوله تفريق څخه وروسته به پرښځه باندي عدت واجب وي ولی چې په نکاح فاسده کې شبه دنکاح موجوده ده اوداحتياط په محل کې شبه نکاح په حقيقت نکاح پسې ملحق

کړل شوي ده او نسب داسې امردی دکوم به ثابتولو کې چې احتیاط کیږي ولی چې د نسب په ثبوت کې د ولد احیاء ده چې ده لره به تربیت کونکی حاصل شي لهذا نسب به ثابت وي نو د نسب د حفاظت لپاره به عدت هم واجب وي.

ف: د امام محمد رحمه الله په نزد په نکاح فاسده کې نسب له وخت د دخول څخه ثابتیږي او د شیخینو په نزد د نکاح له وخته ثابتیږي ثمره اختلاف په دي صورت کې ښکاره کیږي چې د نکاح فاسدي څخه شپږ میاشتې وروسته بچی پیدا شو لیکن د دخول له وخت څخه لا شپږ میاشتې نه دي پوره شوي نو د شیخینو په نزد به نسب ثابتیږي او د امام محمد رحمه الله په نزد نه ثابتیږي او پر همدي باندي فتوی هم ده لما فی شرح التنویر: وهذا قول محمد وبه یفتی وقالا ابتداء المدة من وقت العقد کالصحیح ورجحه فی النهر قال ابن عابدین: (قوله ورجحه فی النهر) ترجیحه لا یعارض قول صاحب الهدایة وغیره ان الفتوی علی قول محمد. (ردالمحتار: ۲/۳۸۲)

(۱۰۱) وَمَهْرُ مِثْلِهَا يُعْتَبَرُ بِقَوْمِ أَبِيهَا إِذَا اسْتَوَيَا سِنًّا وَجَمَالًا وَمَالًا وَبَلَدًا وَعَصْرًا وَعَقْلًا وَدِينًا وَبَكَارَةً (۱۰۲) فَإِنْ لَمْ يُوجَدْ فَمِنَ الْأَجَانِبِ

**ترجمه**: او د مهر مثل د ښځې به معتبریږي د ښځې د پلار د خاندان والا حال دا چې دواړه به برابروی په عمر او جمال او مال او ښهر او او زمانه او عقل او دینداری او په باکره والی کې، که نه وو موجود نو بیا د اجانبو اعتبار دی.

**تشریح**: (۱۰۱) د ښځې په مهر مثل کې به ددي د خاندان د ښځو اعتبار کیږي یعنی هغه ښځې چې ددي د پلار له طرفه دي ته منسوبې وي مثلا خوندي، عمې، او د اکالوراني وغیره ددوئ چې څومره مهري د ښځې مهر مثل به هم ددوئ په شان وي ولی چې ښځې د پلار د قوم لور ته منسوبه وي د هغه شرافت په وجه سره ښځه شریفه گڼل کیږي، او په مهر مثل کې مزید د څه نورو شیانو اعتبار هم وي مثلا دا چې دا دواړه ښځې به په عمر کې، په جمال کې، په مال کې، په عقل کې، په دین کې، په ښار کې، او په زمانه کې سره برابري وي، همدا شان په بکارت او ثیوبت، علم او ادب او په حسن اخلاق کې به سره برابري وي ولی چې مهر مثل ددي او صافو په اعتبار سره مختلف کیږي.

(۱۰۲) قوله فان لم توجد فمن الاجانب ای ان لم توجد من قوم ابیها من کانت مثل حالها فی الاشیاء المذکورة فیعتبر من الاجانب

یعنی که د پلار په خاندان کې کومه داسې ښځه نه وي چې په دي امورو کې له دي سره برابره وي نو بیا به ددي مهر د پردیو ښځو مهر ته په کتلو سره مقرریږي او په پردیو کې به هم د هغې قبیلې ښځو ته کتل کیږي کومه چې ددي د پلار د قبیلې په شان وي.

ف: په مهر مثل کې به د ښځې د مور او خاله اعتبار نه کیږي په دي شرط چې ددي مور او خاله ددي د پلار له قوم څخه نه وي. مگر د مور او د خاله اعتبار به هغه وخت نه کول کیږي چې د ښځې د پلار د قوم ښځې موجودي وي او که د پلار د قوم ښځې نه وي موجودي نو بیا په پردیو کې د ښځې د مور د قوم د ښځو اعتبار کول اولی دی تر نورو پردیو ښځو.

(۱۰۳) وَصَحَّ ضَمَانُ الْوَلِيِّ الْمَهْرَ وَتُطَالِبُ زَوْجَهَا أَوْ وَلِيَّهَا (۱۰۴) وَلَهَا مَنْعُهُ مِنَ الْوَطْءِ وَالْإِخْرَاجِ لِلْمَهْرِ وَإِنْ وَطِئَهَا (۱۰۵) وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي قَدْرِ الْمَهْرِ حُكِّمَ مَهْرُ الْمِثْلِ (۱۰۶) وَالْمُتْعَةُ لَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الْوَطْءِ (۱۰۷) وَلَوْ فِي أَصْلِ الْمُسَمَّى يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ

**ترجمه**: اوصحيح ده ضامن کيدل دولی مهرلره اوعورت به مطالبه کوي له خپل خاوندڅخه يا له خپل ولی څخه ، اوښځې لره داحق شته چې دامنع کړي خاوندله وطی څخه اوله باهرته بولوڅخه دمهرپه وجه سره که څه هم خاوندوطی کړي وي له دي سره ، اوکه دواړو اختلاف وکړ دمهرپه مقدارکې نوحکم به جوړيږي مهرمثل ،اومتعه لره که يې طلاق ورکړي وو له وزطی څخه وړاندي ، اوکه په اصل مسمی کې اختلاف وکونومهرمثل واجبيږي .

**تشريح** :(۱۰۳)که دښځې ولی ښځې ته ددي دخاوندله طرف څخه دمهرضامن شونوداجائزده ولی چې ولی په خپل ځان باندي ديوشئ دلازمولواهل دی ، اوښځې لره اختيار دی چې دادخپل مهرمطالبه له خاوندڅخه وکړي يا له ولی څخه ولی چې په ټولو کفالوکې دادستوردی چې صاحب مال له مديون اوکفيل دواړو څخه مطالبه کولی شي .

(۱۰۴)اوکه ټول مهريابعض مهرمعجل (کوم مهرچې خاوندفوراًاداء کوي هغه ته معجل ويل کيږي اوکوم چې پوروي هغه ته مؤجل ويل کيږي)مقررشوی وو نوخاوندله طرفه دمقدارمعجل دعدم اداء کولوپه وجه سره ښځې لره دااختياردی چې داخاوندله دي سره له جماع کولوڅخه منع کړي ، همداشان که خاونداپه سفرباندي بيول وغواړي نوهم ښځې لره دااختيارشته چې له ده سره په سفرله تللوڅخه منع وکړي ولی چې نکاح عقدمبادله دی کوم چې دجانبينوپه منځ کې دمساوات تقاضاکوي او په مبدل يعنی بضع کې دخاوندحق متعين دی لهذااوس بايدښځې ته په بدل باندي قبضه ورکړي ترڅو دښځې حق په بدل کې متعين شي په دي شان به په دواړوکې مساوات راشي .بيادامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددا تعميم هم شته چې که له دي سره وړاندي خاوندوطی کړي وي اوکه يې نه وي کړي ولی چې مهر دټولوصحبتونوپه مقابله کې دی دکوم يوه صحبت په مقابله کې نه دی ترڅوچې يوصحبت هم بلاعوضه پاته نشي لهذاله يوځل وطی کولوڅخه وروسته له دوهم ځل وطی کولوڅخه هم دمنع کولوحق شته .

**ف**: دصاحبينوپه نزدپه له يوځل وطی کولووروسته ښځې لره دمنع کولوحق نشته ولی چې يوځل له وطی کيدلوڅخه وروسته دښځې له طرف څخه پوره معقودعليه خاوندته سپارل شوی دی همداوجه ده چې اوس په خاوندباندي پوره مهرلازم دی نوداداسې شوه لکه چې بائع په ثمن له قبضې کولوڅخه وروسته مشتري ته مبيع وسپاري نوبائع دثمن په وجه سره دمبيع دمنع کولوحق نشته .

**ف**: دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمختار:(ولهامنعه من الوطء)ودواعيه شرح مجمع (والسفربهاولوبعدوطء وخلوة رضيتهما)لان کل وطأة معقودعليهافتسليم البعض لايوجب تسليم الباقی.(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار (۲/۳۸۸)

(۱۰۵)که زوجينودمهرپه مقدارکې اختلاف سره وکړمثلازوج وايې چې زرروپۍ مهرمقرر شوی وو اوو جه وايې دوزره مقررشوی وو نومهرمثل به فيصل جوړيږي نو که مهرمثل يوزريا له دي څخه لږ ود نودخاوندقول به مع اليمين معتبروي اوکه مهرمثل دوزره يا له دي څخه زيات وي نودښځې قول به مع اليمين معتبروي اوکه مهرمثل دزرو اودووزروپه منځ کې وو نومهرمثل به واجبيږي .

**ف**: که په زوجينوکې کوم يوه ګواه پيښ کونوخواه که مهرمثل دخاوندقول مطابق وي يادښځې دقول مطابق وي په دواړوصورتونوکې ګواه منل کيږي اوکه دواړوګواه پيښ کړونوکه مهرمثل دخاونددقول

مطابق وو نو د ښځې ګواه به منل کيږي اوکه مهرمثل د ښځې دقول مطابق وو نو دخاوند ګواه به منل کيږي ولې چې ګواه هغه شئ ثابتوي کوم چې ظاهراثابت نه وي او څرنګه چې په اول صورت کې د ښځې قول خلاف ظاهر دی ځکه به نو د دې ګواه منل کيږي او په دوهم صورت کې دخاوند قول خلاف ظاهر دی ځکه به نو دده ګواهانو ګواهي منل کيږي.

(۱۰۶)قوله والمتعة لو طلقها قبل الوطی ای وحکم المتعة لو طلقها قبل الوطی ،يعنی که په مذکوره بالاصورت کې خاوند ښځې ته قبل الوطی طلاق ورکړنو متعه مثل به فيصل جوړيږي يعنی متعه مثل که دزرورپو نصف ياله دې څخه لږوه نو دخاوند قول به مع اليمين معتبروي اوکه متعه مثل دد وو زرو دنصف ياله دې څخه زيات سره برابره وه نو د ښځې قول به مع اليمين معتبروي ،اوکه کوم يوه ګواه پيښ کويادواړوګواه پيښ کونو په دې صورتونو کې هم هغه شان تفصيل دی کوم چې په سابقه مسئله کې بيان کړل شو.

(۱۰۷)قوله ولوفی اصل المسمی يجب مهرالمثل ای لو اختلفا فی حال الحيوة فانکر احدهما التسمية والاخر ادعاه فيجب مهرالمثل ،يعنی که دزوجينو اختلاف په مقدارمهرکې نه بلکه په اصل مسمی کې وو مثلايو وايي چې دعقدنکاح پروخت مهرمقررشوی دی او بل منکردی نو بالاتفاق مهرمثل واجبيږي،دطرفينو په نزدخو ځکه چې په دواړوکې يو دمهرمسمی مدعی دی او بل منکردی اوقول دمنکرمعتبروي لهذا هم دا به ويل کيږي چې مهرنه دی مقررشوی اوکله چې مهرنه وي مقررشوی نومهرمثل واجبيږي،اودامام ابويوسف رحمه الله په نزداصل خومهرمسمی دی مګرڅرنګه چې داختلاف په وجه سره ومسمی فيصله متعذره شوه په دې وجه باندې مهرمثل واجبيږي.

ف:اوکه په زوجينو کې کوم يو مړشواوهغه بل دمرده له ورثه سره په مقدارمهر يااصل مسمی کې اختلاف وکونو په دواړو صورتونو کې هغه حکم دې کوم چې په دواړو په حيات کې داختلاف په صورت کې وو ولی چې دکوم يوه په مرګ سره دمهر مثل اعتبارنه ساقطيږي .همدا شان که خاوندوروسته له دخول څخه طلاق ورکړنو که اختلاف دژوندی اومرده دورثه په منځ کې په اصل مسمی کې وي نومهرمثل به واجبيږي اوکه اختلاف په مقدارمهرکې وو نو مهرمثل به فيصل جوړوي.

(۱۰۸)وَإِنْ مَاتَا وَاخْتَلَفَتْ وَرَثَتُهُمَا وَلَوْ فِي الْقَدْرِ فَالْقَوْلُ لِوَرَثَتِهِ (۱۰۹)وَمَنْ بَعَثَ إِلَى امْرَأَتِهِ شَيْئًا فَقَالَتْ هُوَ هَدِيَّةٌ وَقَالَ هُوَ مِنَ الْمَهْرِ فَالْقَوْلُ لَهُ فِي غَيْرِ الْمُهَيَّإِ لِلْأَكْلِ

**ترجمه** :اوکه زوجين وفات شول او اختلاف وکودد وئ دواړو ورثه و نوکه څه هم په مقدار مهرکې اختلاف وي نو قول دزوج دورثه معتبردی ،اوچاچې وليږدول خپلې ښځې ته کوم شئ نو ښځې وويل چې داهديه وه اوخاوند وويل چې هغه له مهرڅخه وو نوقول به دخاوند معتبروي دخوراک له شيانو څخه په علاوه کې.

**تشريح** :(۱۰۸)که دد واړوزوجينو انتقال وشويادد وئ ورثه وپه مقدارمهرکې اختلاف وکونودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددخاونددورثه وقول مع اليمين معتبردی که څه هم هغوئ دشئ قليل اقرا روکړي ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزدهم دخاونددورثه قول معتبردی ليکن که ورثه دکوم معمولی شئ اقراروکړي نودامام ابويوسف رحمه الله په نزددوئ قول معتبرنه دی .دامام محمد رحمه الله په نزدترپوره کولو دمهرمثل پورې دښځې دورثه قول معتبردی اوله دې څخه په زائدکې دخاونددورثه قول معتبردی کمافی حال الحياة

.دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادی چې دخاوندورثه دمهرله زیادت څخه منکردي او د ګواه دنه وجودپه صورت کې قول دمنکرمع الیمین معتبروي لهذادخاونددورثه قول به معتبر وي.اوکه دزوجینوورثه و په اصل مهرکې اختلاف وکړنودامام صاحب په نزدبه دهغه چاقول معتبروي کوم چې له مقررکیدلوڅخه انکارکوي لیکن کوم شئ به فیصل نه جوړوي اودخاوندپه ورثه وباندي هیڅ هم واجب نه دي.

**ف**:دصاحبینوپه نزدبه مهرمثل فیصل جوړوي لکه څرنګه چې په حالت حیاة کې دی دصاحبینوقول راجح دی کمافی شرح التنویر:وفی الاختلاف(فی اصله)القول لمنکر التسمیة(لم یقض بشئ)مالم یبرهن علی التسمیة(وقالایقضی بمهر المثل)کحال الحیاة(وبه یفتی).(ردالمحتار:۲/۳۹۳)

(۱۰۹)که خاوندښځې ته یوڅه شئ ورولیږل بیادزوجینوسره اختلاف شو،خاوندوایې چې دامهروو ،اوښځه وایې چې داهدیه وه ،نوپه دي صورت کې دخاوندقول مع الیمین معتبردی ولی چې خاوندمالک جوړونکی دی لهذاپه جهت تملیک باندي هغه ډیرښه خبردی چې دهدي په ډول وو اوکه دمهرپه ډول وو .داپه هغه وخت کې ده چې لیږل شوی شئ دخورک څښاک شئ نه وي اوکه خاوندښځې ته دخورک کوم داسې شئ ورولیږی چې هغه تردیره په پاته کیدلوسره خرابیدومثلاکباب شوي غوښه یاپوخ شوی سالن وغیره ،اوس دزوجینواختلاف شونوددي شیانوپه باره کې به دښځې قول معتبر وي ولی چې ددي شیانوهدیه والی متعارف دی عموماداشیان بطورهدیه لیږل کیږي نه بطورمهرلهذاددوئ په باره کې به دښځې قول معتبروي.

(۱۱۰)وَلَوْ نَكَحَ ذِمِّيٌّ ذِمِّيَّةً بِمَيْتَةٍ اَوْ بِغَيْرِ مَهْرٍ وَذَا جَائِزٌ عِنْدَهُمْ فَوُطِئَتْ اَوْ طُلِّقَتْ قَبْلَهُ اَوْ مَاتَ عَنْهَا فَلَا مَهْرَ لَهَا(۱۱۱)وَكَذَا الْحَرْبِيَّانِ ثَمَّهْ

**ترجمه**:اوکه نکاح وکړه ذمی له ذمیه سره دمردارپه عوض یابغیرله مهرڅخه اوداجائزده ددوئ په نزدبیاله دي سره وطی وشوه یاطلاق ورکړل شوله وطی څخه وړاندي یاخاوندمړشونومهربه نه وي دښځې لپاره ،اوهمداحکم دی دحربیانوپه دارالحرب کې.

**تشریح**:(۱۱۰)کله چې مصنف رحمه الله دمسلمانانودمهرله بیان څخه فارغ شونودکافرانودمهرپه بیان یې شروع وکړه لکه چې فرمایې چې که په دارالاسلام کې کوم ذمی له ذمیه سره نکاح وکړه اومرداریې مهرمقررکو(یعنی کوم داسې شئ یې مهرمقررکوکوم چې مال نه دی )یایې بغیرله مهره نکاح وکړه اوهمداشان نکاح ددوئ په دین کې جائزه وه بیاخاوندله دي له دي ښځې سره صحبت وکویایې له صحبت کولوڅخه وړاندي طلاق ورکویاخاوند مړشونودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددي ښځې لره به مهرنه وي ولی چې ذمی خونه په دیاناتوکې زموږاحکام پرځان لازم کړي دي اونه په هغواعتقاداتومې په کوموکې چې ددوئ اعتقادزموږله اعتقادڅخه مخالف دی لکه بیع دخمراوخنزیروغیره اوموږته حکم شوی دی چې دوئ پرخپل دین باندي پریږدولهذادي ښځې لره به مهرنه وي.

**ف**:اودصاحبینوپه نزدمهرمثل به وي دصاحبینودلیل دادی چې دعقدذمه په وجه سره ذمی په معاملاتوکې احکام اسلام په خپله پرخپل ځان لازم کړي دي چنانچه دزنااورباوغیره ممانعت ددوئ لپاره هم دي لکه څرنګه چې زموږلپاره ممانعت دی اونکاح له معاملاتوڅخه ده لهذاپه باب دنکاح به زموږاوددوئ حکم یووي.صاحبینوته ځواب ورکړل شوی دی چې دذمی لپاره زناځکه په دي وجه ممنوع ده چې زناپه

تولو ادیانو کې حرامه ده او ربا په دې وجه ممنوع ده چې ربا له عقد ذمه څخه مستثنی ده لقوله ﷺ الامن اربی
یعني خبردار اچاچې د ربا معامله وکړه زموږ او د هغه په منځ کې هیڅ عهد نشته لهذا نکاح په زنا او ربا باندې
نیاسول صحیح نه دي .

(۱۱۱) قوله و كذا الحربیان ثمه ای و كذا لو نكح حربی حربیة بمیتة فی دار الحرب فلا مهر لها، یعني که په دار الحرب کې
حربیانو مردار شئ مهر مقرر کویایې بغیرله مهر څخه نکاح وکړه نو باتفاق ائمه ثلاثه د دې ښځې لپاره
مهر نشته ولې چې په دار الحرب کې دوئ د قانون اسلام د پابندي التزام نه ده کړی او موږ له طرفه پر دوئ لازم
کول متعذر دي لهذا پر دوئ پر مهر واجبولو کې هیڅ فائده نشته .

ف: د امام زفر رحمه الله په نزد له حربیه کافره سره که خاوند صحبت وکویا مړشونو دي لره به مهر مثل واجبیږي
ولې چې نکاح بغیرله مال څخه مشروع نه ده لکه چې ارشاد باری تعالی دی (ان تبتغوا باموالكم) او د الله تعالی
خطاب عام دی .

(۱۱۲) وَلَوْ تَزَوَّجَ ذِمِّيٌّ ذِمِّيَّةً بِخَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ عَيْنٍ فَأَسْلَمَا أَوْ أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا فَلَهَا الْخَمْرُ وَالْخِنْزِيرُ (۱۱۳) وَفِي غَيْرِ الْعَيْنِ لَهَا قِيمَةُ الْخَمْرِ وَمَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْخِنْزِيرِ

**ترجمه**: او که نکاح وکړه ذمی له ذمیه ښځې سره په د معینو شرابو یا خنزیر په عوض بیا دواړه اسلام قبول
کړیا یوه اسلام قبول کړ نو ښځې لره به [illegible]مرا و خنزیروي ، او په غیر معین کې ښځې لره د شرابو په صورت کې
د شرابو قیمت دی او مهر مثل دی د خنزیر په صورت کې .

**تشریح**: (۱۱۲) که ذمی کس له ذمیه ښځې سره نکاح وکړه او مهر یې معین شراب یا معین خنزیر مقرر کړ بیا په
مهر له قبضه کولو څخه وړاندې دواړه مسلمانان شول یا په دواړو کې یو مسلمان شو نو د امام ابو حنیفه رحمه الله
په نزد به د دې ښځې لره هغه معین شراب یا معین خنزیر وي ولې چې ښځه د معین خمر او معین خنزیر د عقد په
وجه سره مالکه شوه همدا وجه ده چې هغه اوس په دې کې د هر قسم تصرف اختیار لري او همدا وجه ده چې که
له قبض څخه وړاندې هغه هلاک شو نو د ښځې پر ملک هلاکیږي د خاوند په ملک نه هلاکیږي
لهذا خمر او خنزیر د ښځې لپاره متعین دي .

ف: د امام ابو یوسف رحمه الله په نزد ښځې لره مهر واجب دی ولې چې مسلمان منع کړل شوی دی د خمر او خنزیر له
مالک جوړیدلو او مالک جوړولو څخه . او امام محمد رحمه الله فرمایي چې د خمر او خنزیر قیمت واجبیږي ولې
چې بوقت عقد تسمیه صحیح ده ولې چې عاقدین مسلمان نه دي حال دا چې اوس له تسلیمولو څخه عاجز دي
لهذا قیمت به واجبیږي .

ف: د امام ابو حنیفه رحمه الله قول راجح دی لما قال المفتی غلام قادر النعمانی حفظه الله تعالی: القول الراجح هو قول ابی حنیفه لان قوله
قول المتون........الخ. (القول الراجح: ۱/۲۸۹)

(۱۱۳) او که یې غیر معین شراب یا غیر معین خنزیر مقرر کو بیا زوجین یا له دواړو څخه یوه اسلام
قبول کړ نو د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د غیر معین شرابو د مقررولو په صورت کې به د ښځې لپاره
د شرابو قیمت واجب وي ولې چې په دې صورت کې په قبضه کولو سره ښځه د دې مالکه کرځي او قبضه
د اسلام په وجه سره متعذره شوه نو شراب څرنګه چې له ذوات الامثال څخه دي او د دې قیمت اخیستل د عین

شرابو داخيستلو په معنی کې نه دی لهذا دشرابو قیمت به واجبيږي .اوخنزیرځرنګه چې له ذوات القیم څخه دی او دهغه قیمت اخیستل دعین خنزیر داخیستلو په معنی دي لهذا دخنزیرپه صورت کې به مهرمثل واجب وي .اودصاحبینو په نزد دغیرمعین په صورت کې هم هغه حکم دی کوم چې دغیرمعین په صورت کې وو .

**ف**:دامام ابو حنیفه رحمه الله قول راجع دی لمافي الدر المختار:(و)لها(في خمر عين)قيمة الخمر ومهر المثل في الخنزير اذا اخذ القيمي كاخذ عينه (الدر المختار على هامش ردالمحتار:۲/۳۰۰)

## باب نكاح الرقيق

داباب دغلام دنکاح په بیان کې دی

کله چې مصنف رحمه الله داحرارو دنکاح له بیان څخه فارغ شونواوس دغلامانو دنکاح احکام بیانوي وجه دمناسبت ظاهره ده چې حراصل دی .همداراز له باب المهرسره متصل دغلامانو دنکاح دذکرکولو وجه داده چې غلام په نکاح کې مهرجوړيدلی شي که کومه ښځه خاوندته ووایي چې ددي غلام په عوض له تاسره نکاح کول نوصحيح ده .

رقیق مملوک غلام ته ویل کیږي ددي اطلاق پرواحداوجمع دواړوکیږي ،رقیق ،له رق بمعنی ضعف څخه دی اوغلام ته رقیق په دي وجه ویل کیږي چې دی ضعیف اوله تصرفاتو څخه ممنوع وي .

(۱۱۴)لم يجز نكاح العبد والأمة والمكاتب والمدبر وأم الولد إلا بإذن السيد(۱۱۵)فلو نكح عبد بإذنه بيع في مهرها(۱۱۶)وسعى المدبر والمكاتب ولم يبع فيه

**ترجمه** :جائزنه ده دغلام ،مینځې ،مکاتب ،مدبراوام ولدنکاح مګردمولی په اجازه سره ،نوکه نکاح وکړه غلام دمولی په اجازه سره نوخرڅیږي به دښځې په مهرکې ،اوګټې به مهرمدبراومکاتب اوخرڅول کیږي به نه په مهرکې .

**تشریح** :(۱۱۴)دغلام ،مینځې ،مکاتب ،مدبراوام ولدنکاح دمولی له اجازې څخه بغیرجائزنه ده (یعنی نافذه نه ده بلکه دمولی تراجازې پورې موقوفه ده )ولې چې غلام اومینځې نکاح ددوئ په حق کې عیب شمارل کیږي لهذادمولی له اجازې څخه بغیرهغه ددي دنفاذمالک نه دي ،اودمکاتب نکاح ځکه موقوفه ده چې مکاتب لره که څه هم دتحصیل منافع لپاره دکسب کولو اومحنت کول اجازه شته ترڅو دکسب په ذریعه سره شرافت حریت حاصل کړي مګرنکاح داسې تصرف نه دی چې په هغه کې دي تحصیل منافع وي لهذادنکاح په حدکې مکاتب اوس هم غلام شمارل کیږي ،باقی په مدبراوام ولدکې دمولی ملک ځرنګه چې تراوسه شته لهذادمولی له اجازې څخه بغیرمدبراوام ولدهم دنکاح کولو مجازنه دي .

**ف**:دامسئله مکرره ده ولی چې مصنف رحمه الله له دي څخه وړاندي په باب الاولياء کې له دي څخه په بنه عبارت سره داذکرکړې ده ولی چې هلته عبارت داسې دی ،ونكاح العبدوالامة بلااذن السيدموقوف ، اودلته یې فرمایلي دي لم يجزنكاح العبد الخ اوصحیح داده چې ددوئ نکاح ناجائزه نه ده بلکه موقوفه ده .هوکه داوویل شي چې لم يجزپه معاملاتوکې دلم ينفذپه معنی سره ده اونکاح هم له معاملاتو څخه ده نوبیاداعبارت هم صحیح کیږي .

ف :دامام مالک رحمه الله په نزد دغلام دمالک له اجازې څخه بغیر نکاح کول جائز ده ولی چې غلام د طلاق ورکولو مالک دی نو د نکاح کولو مالک به هم وي ولی چې نکاح د طلاق سبب دی او کوم کس چې د کوم شئ مالک شي هغه دهغه دسبب مالک هم وي ،امام مالک رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې په طلاق ورکولو سره دغلام عیب زائل کیږي او په نکاح کولو سره عیب ثابتیږي لهذا نکاح په طلاق قیاسول صحیح نه دي .داحنافو دلیل دنبی کریم ﷺ ارشاد دی﴿ أيما عبد تزوج بغير إذن مولاه فهو عاهر ﴾(کوم غلام چې دمولی له اجازې څخه بغیر نکاح وکړه هغه زانی دی ).

(۱۱۵)نو که غلام دمولی په اجازه سره نکاح وکړه نو دا نکاح صحیح ده او مهر دغلام په ذمه قرض او واجب ګرځي او ددې مهر اداء کولو لپاره به غلام خرڅیږي لکه چې ماذون فی التجارة غلام په قرضه کې خرڅیږي البته که په یو ځل خرڅولو سره دده په ثمنو مهر ادانه شو نو دوهم ځل به نه خرڅیږي بلکه دباقی مهر مطالبه به له غلام څخه له ازادي وروسته کیږي .

(۱۱۶)مدبر او مکاتب که دمولی په اجازه سره نکاح وکړه نو دادواړه به روپۍ ګټي او مهر به اداء کوي دمهر اداء کولو لپاره دادواړه نه خرڅیږي ولی چې مدبر او مکاتب سره بقاء تدبیر او کتابته له یو ه ملک څخه بل ملک ته منتقل کیدل نه قبولوي لهذا دادواړه به کسب کوي او ددوئ له ګټې به مهر اداء کیږي ،البته مکاتب که له بدل کتابت اداء کولو څخه عاجزه شوه او بیرته غلام جوړ شو نو اوس مهر دده پرذمه دین دی او دهغه داداء کولو لپاره به دي خرڅیږي الا دا چې مولی دده مهر اداء کړي نو بیا دده دخرڅولو ضرورت نشته .

(۱۱۷)وَطَلِّقْهَا رَجْعِيَّةً إِجَازَةٌ لِلنِّكَاحِ الْمَوْقُوفِ لَا (۱۱۸)طَلِّقْهَا أَوْ فَارِقْهَا(۱۱۹)وَالْإِذْنُ بِالنِّكَاحِ يَتَنَاوَلُ الْفَاسِدَ أَيْضًا(۱۲۰)وَلَوْ زَوَّجَ عَبْدًا مَأْذُونًا لَهُ امْرَأَةً صَحَّ(۱۲۱)وَهِيَ أُسْوَةُ الْغُرَمَاءِ فِي مَهْرِهَا(۱۲۲)وَمَنْ زَوَّجَ أَمَتَهُ لَا يَجِبُ عَلَيْهِ تَبْوِئَتُهَا فَتَخْدُمُهُ وَيَطَؤُهَا الزَّوْجُ إِنْ ظَفِرَ بِهَا

**ترجمه** :او (دمولی غلام ته دا ویل چې )دی ته رجعی طلاق ورکړه اجازه ده دنکاح موقوفې ،نه دا ویل چې دې ته طلاق ورکړه یا یې جدا کړه ،او دنکاح اجازه شامله ده نکاح فاسدې ته هم ،او که یې نکاح وکړه د ماذون غلام له کومې ښځې سره نو صحیح ده ،او ښځه برابره ده له قرضخواهانو سره دخپل مهر په باره کې ،او چا که په نکاح ورکړه خپله مینځه نو پر ده نه ده واجب شپه تیرول کول نو دا دي دمولی خدمت کوي او وطی دي کوي له دې سره خاوند کله چې پردې موقع پیدا کړي .

**تشریح** :(۱۱۷)قوله وطلقها رجعية اجازة للنكاح اى قول المولى لعبده الذي تزوج بغير اذنه طلقها طلقة رجعية اجازة للنكاح ،صورت مسئله دا دی چې غلام دمولی له اجازې څخه بغیر نکاح وکړه نو څرنګه چې دا نکاح دمولی تر اجازې موقوفه ده نو که مولی غلام ته وویل ،چې ته دې ته طلاق رجعي ورکړه نو دمولی دا ویل دنکاح موقوف اجازه ده ولی چې رجعی طلاق له نکاح صحیح څخه وروسته وي لهذا دمولی دا قول داجازې ورکولو په معنی کې متعین دی .

(۱۱۸)قوله لا طلقها او فارقها اى لايكون اجازة للنكاح قول المولى طلقها او فارقها ،یعنی که په مذکوره بالا صورت کې مولی غلام ته وویل ،چې ته دې ته طلاق ورکړه بغیر له قید درجعی ،یا مولی وویل ،ته دا جدا کړه ،نو دمولی دا قول دنکاح موقوفې اجازه نه ده ولی چې په دې کې دا احتمال هم شته چې دمولی مقصد دي دنکاح رد ول وي لهذا دمولی دا قول اجازه نه شمارل کیږي .

(۱۱۹)که مولی خپل غلام ته دنکاح کولو اجازه ورکړه نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد داجازه نکاح صحیح اوفاسدي دواړو ته شامله ده ولی چې اجازه مطلقه په صحت یافسادسره مقیده نه ده لهذادواړه قسمه عقودوته شامله ده لکه دخرڅولواواخیستلواجازي ورکولوپه صورت کې چې اجازه عقدصحیح اوفاسددواړوته شامل وي .

ف:دصاحبینوپه نزدداجازه صرف نکاح صحیح ته شامله ده فاسد ته نه ده شامله ولی چې له نکاح څخه مقصودعفت اوپاک لمنې ده اودامقصودصرف په نکاح صحیح سره حاصلیږي په فاسده سره نه حاصلیږي لکه چې څوک دنکاح وکیل جوړل چې داتوکیل صرف دنکاح صحیح توکیل کیږي دفاسدي نه،لهذادنکاح داجازي ورکولوپه صورت کې به هم دااجازه صرف دنکاح صحیح اجازه وی دفاسدي اجازه به نه وي .ثمره داختلاف داجازت په انتهاء کې ښکاریږي چې دامام صاحب په نزدغلام ته دمولی له طرفه حاصل شوی اجازت په نکاح فاسدسره هم پای ته رسیږي نوله نکاح فاسدکولوڅخه وروسته ده ته دبلې نکاح کولوحق نشته ،حال داچې دصاحبینوپه نزددنکاح فاسدپه صورت کې دمولی اجازت پای ته نه رسیږي بلکه دنکاح صحیح کولواجازه اوس هم غلام لره شته .

ف:دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لماقال المفتی غلام قادر النعمانی:القول الراجح هوقول ابی حنیفة،قال العلامة ابن الهمام فالمعول علیه طریقة الاطلاق ویجاب عن مسئلة الیمین بان الایمان مبنیة علی العرف (القول الراجح: ۱/۲۹۰)

(۱۲۰)که مولی دخپل داسې غلام نکاح له یوي ښځې سره وکړه کوم چې ماذون له فی التجارة وي اومقروض وي نودانکاح صحیح ده ولی چې صحت نکاح مبنی ده مالک لره په ثبوت ملک رقبه باندي اوثبوت ملک رقبه مولی لره له اذن فی التجارة وروسته هم باقی دی لهذانکاح صحیح ده .

(۱۲۱)اوښځه به دخپل مهرپه باره کې له قرضخواهانوسره برابره شریکه وي یعنی غلام به دقرض اومهردواړولپاره خرڅیږي په قیمت کې به له ښځې اوقراضخواهانو څخه هریوبقدرحق شریک وي ولی کله چې نکاح صحیح شوه نودین مهرپه داسې سبب سره واجب شوکوم چې رفع کیدی نشي نوداغلام دهغه مریض په شان شوکوم چې دمرض په حالت کې له یوي ښځې سره نکاح وکړي نولکه څرنګه چې دمریض ښځه په خپل مهرمثل کې له قرضخواهانوسره برابره شریکه وي همداشان به دمذکوره غلام ښځه هم له قرضخواهانوسره دخپل مهرمثل په حق کې برابره شریکه وي ،البته شرط دادی چې نکاح په مهرمثل یاله دې څخه پرکم شوي وي ولی چې که نکاح له مهرمثل څخه پرزائدشوي وه نوپه زائدمقدارکې به ښځه له قرضخواهانوسره برابره شریکه نه وي بلکه کوم وخت چې قرضخواهان خپل قرض وصول کړي نوچې څه پاتې شي له هغه څخه به ښځه دازائدمقداروصول کوي .

(۱۲۲)که مولی دخپلې مینځې نکاح له کوم کس سره وکړه نوپرمولی باندي تبویت لازم نه دی یعنی دخاوندپه کورکې دمینځې شپه تیرول لازم نه ده بلکه مینځه به دخپل مولی خدمت کوي اوخاوندته به وویل شي چې کله هم موقع پیداکړي وطی کوه ولی چې دمولی حق دمینځې په رقبه اومنافع (ماسواله منفعت بضع څخه )دواړوکې شته کوم چې کثیردی حال داچې دزوج حق صرف په منافع کې ده کوم چې قلیل

دی او دکثیرابطال دحصول قلیل لپاره جائزنه دی خاص کرکله چې دقلیل حصول بغیرابطال کثیرممکن هم وي.

ف: په مذکوره صورت کې که مولی مینځې ته له خاوندسره دشب باشي کولواجازت ورکړنودمینځې نفقه اوسکنی به اوس پرخاوندباندي لازمه وي اوکه مولی اجازت ورنه کونونفقه اوسکنی به دمولی پرذمه وي ولې چې نفقه داحتباس په عوض کې واجبیږي لهذاکه احتباس نه وي نونفقه به هم لازمه نه وي .اوکه مولی دشب باشي اجازت ورکړبیادده رأیه بدله شوه نوده لره دااختیارشته چې دشب باشي اجازت منسوخ کړي ولې چې دبقاء ملک په وجه سره دمولی حق خدمت اوس هم باقي دی لکه څرنګه چې په نکاح ورکولوسره دمولی حق نه ساقطیږي په شب باشي سره به هم نه ساقطیږي.

(۱۲۳)وَلَهُ إِجْبَارُهُمَا عَلَى النِّكَاحِ(۱۲۴)وَيَسْقُطُ الْمَهْرُ بِقَتْلِ السَّيِّدِ أَمَتَهُ قَبْلَ الْوَطْءِ(۱۲۵)لَا بِقَتْلِ الْحُرَّةِ نَفْسَهَا قَبْلَهُ(۱۲۶)وَالْإِذْنُ فِي الْعَزْلِ لِسَيِّدِ الْأَمَةِ

**ترجمه**: اومولی لره جائزده مجبورکول دغلام اومینځې په نکاح کولوباندي ،اوساقطیږي مهردمولی په قتل کولوسره خپلې مینځې لره له وطی څخه وړاندي ،نه ده ازادي ښځې دخپل ځان په قتل کولوسره له وطی څخه وړاندي ،اواجازت دعزل په باره کې دمینځې مولی لره حاصل دی.

**تشریح**: (۱۲۳)قوله وله اجبارهماعلی النکاح ای وللمولی اجبارالعبدوالامة علی النکاح ،یعنی مولی لره داحق حاصل دی چې دی خپل غلام اومینځه په نکاح مجبورکړي یعنی ددوئ له رضامندي بغیرددوئ نکاح نافذیږي ولې چې دمولی خپل غلام ته نکاح کول دخپل ملک اصلاح ده ولې چې په نکاح کولوکې غلام له زناڅخه ساتل دي کوم چې دهلاک اونقصان سبب دی ځکه چې دزناپه نتیجه کې پرده حدجاري کیږي کوم چې کله دهلاکت اوکله دنقصان سبب جوړیږي لهذامولی غلام لره په نکاح دمجبورکولوحق لري.

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزدکه مولی دغلام نکاح دده له خوښې څخه بغیروکړه نودانکاح نه نافذیږي ولې چې کوم امورچې له خصائص ادمیت څخه دي دهغوپه باره کې غلام په خپل اصل رأیه قائم ده دهغوپه اعتبارسره غلام مملوک نه دی اونکاح له هغوامورو څخه دی ولې چې غلام دمالک په ملکیت کې دمالیت په اعتبارسره داخلیږي دکوم چې له نکاح سره هیڅ تعلق نشته لهذاغلام دنکاح په اعتبارسره له خپل مولی څخه اجنبی دی په دي وجه به مولی لره په دي اعتبارسره دتصرف حق نه وي .همداراز دانکاح غیرمفیدده ځکه چې غلام لره فی الحال دطلاق ورکولواختیارشته نودعدم رضاپه وجه سره به دی فی الحال طلاق ورکړي .البته که یې دمینځې نکاح ددي له رضاڅخه بغیروکړه نودانافذیږي ولې چې دمینځې بضع دمولی مملوک ده ځکه نومولی لره اختیارده چې دي داکوم بل چاپه ملک کې ورکړي.

(۱۲۴)که مولی دخپلې مینځې نکاح له چاسره وکړه بیاقبل الوطی مولی خپله مینځه قتل کړه نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددمینځې مهرساقطیږي ولې چې دمن له الحق یعنی مولی په فعل سره معقودعلیه له تقرراوستحکام څخه وړاندي فوت شولهذامن له الحق ته به اوس ددی حق دوصول کولوحق نه وي،همداراز قتل داحکام دنیاپه اعتبارسره اتلاف شمارل کیږي همداوجه ده چې پرقاتل باندي قصاص اودیت واجبیږي اوقاتل دمقتول له میراث څخه محرومیږي.

ف :صاحبین فرمایې چې پرخاوند باندې ددې مولی لره مهرواجب دی ،صاحبین دا صورت قیاسوې دمینځې پرخپل مرګ په مړه کیدلو باندې ولی چې مقتول په خپل مرګ سره مړکیږي نولکه څرنګه چې که مینځه پرخپل مرګ مړه کیده نو دمولی لپاره مهرواجبیږي همداشان که مولی مینځه قتل کوي نوهم به مولی لره مهرواجب وي ،صاحبینو ته ځواب ورکړل شوی دی چې مقتول بې شکه په خپل مرګ مړکیږي لیکن قتل ددنیوی احکامو په اعتبار سره اتلاف شمار ل کیږي په همدې وجه خو په قاتل باندې قصاص او دیت واجبیږي نو په وجوب مهرکې به قتل اتلاف شمارل کړل شي .

ف :دامام ابو حنیفه رحمه الله قول راجع دی لان قوله قول المتون وایضا اخر صاحب الهدایة دلیله وهذا ترجیح لقول الراجح عنده.

(۱۲۵)قوله لایقتل الحرة نفسها قبله ای لایسقط المهر بقتل الحرة نفسها قبل الوطی ،یعنی که ازادې ښځې خپل ځان په خپله قتل کړنو دائمه ثلاثه په نزد دې ښځې لره به مهر مثل واجب وي ولی چې دانسان پرخپل نفس باندې جنایت کول داحکام دنیا په اعتبار سره معتبرنه دی که څه هم په اخرت کې به مواخذه وي همدا وجه ده چې په دنیاکې خودکشي کونکی ته غسل ورکول کیږي او دده دجنازې لمونځ اداء کیږي نوخودکشی په خپل مرګ له مړکیدلو سره مشابه ده او په خپل مرګ دمړه کیدلو په صورت کې په خاوند مهرواجبیږي نو دخودکشی په صورت کې به هم مهر په خاوند واجب وي .

## دعزل او ضبط ولادت بیان

(۱۲۶)که چاله مینځې سره نکاح وکړه نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دعزل (بوقت انزال منی له فرج څخه دباندې تویول) کولو اجازه دمولی په اختیارکې ده ولی چې عزل مقصودیعنی ولدلره مخل دی او ولد دمولی حق دی دمینځې حق نه دی لهذخاص دمولی دخوښې اعتبار به کیږي .

ف :دصاحبینو په نزد دعزل اجازت دمینځې په اختیارکې دی ولی چې وطی دمنکوحه مینځې حق دی حتی چې دوطی دمطالبې ولایت مینځې لره حاصل دی او په عزل کولو سره دمینځې دحق کمول دي لهذا ددې له خوښې څخه بغیرعزل جائزنه دی ،همدارز نکاح په دې وجه سره مشروع ده ترڅو له زنا څخه محفوظ شي او داهغه وخت وي کله چې دواړو لره دقضاء شهوت حق حاصل وي حال داچې عزل په قضاء شهوت لره مخل دی ځکه نو دمنکوحه مینځې رضامندی شرط ده. صاحبینو ته ځواب ورکړل شوی دی چې مینځې لره دقضاء شهوت حق حاصل نه دی ولی دمینځې نکاح نه ابتداء دمینځې لپاره مشروع ده او نه بقاء همدا وجه ده چې مینځه له خپل مولی څخه دا مطالبه نشي کولی چې ماپه نکاح ورکړه .

ف :دضبط ولادت په باره کې دحضرت شیخ الاسلام مفتی محمدتقی عثمانی صاحب دامت برکاتهم یو وقیع مضمون ملاحضه کړئ ،فرمایې :زمونږ په زمانه کې چې دخاندانې منصوبه بندې یا ،برته کنټرول په نامه سره کوم تحریک روان دی دهغه په عدم جواز کې شبه نشته ،اول خو په دې وجه چې دضبط ولادت اجازت چې په کومو مقاماتو کې ثابت دی دهغه حاصل په انفرادي طورسره ضبط ولادت کول دي لیکن دې لره یو عام عالمګیر تحریک جوړول صحیح نه دی ،دوهم ددې تحریک غرض هم فاسد دی ولی چې ددې منشاء ،خشیت

املاق (دمفلسي اندېښنه )ده اودامنشاء بنص قراني فاسده ده لکه چې دالله تعالی ارشاددی ﴿ولاتقتلوا اولادکم خشیة املاق ﴾ په دې کې دافهمول غلط دي چې داحکم په قتل اولادپورې مخصوص دی ولی چې الله تعالی د ،خشیة املاق په الفاظوسره ددې فعل دشناعت یوعام حکم هم بیان فرمایلې دی چې هرهغه عمل چې له هغه څخه بخوف مفلسي تحدیدنسل کیږي هغه ناجائزدی .
په اصل کې داتحریک دالله تعالی دنظام ربوبیت په خپل لاس کې داخیستلومترادف دی ،حال داچې دالله تعالی ارشاددی ﴿ومامن دابة فی الارض الاعلی الله رزقها﴾اوقانون قدرت دادی چې په هردورکې دپیداور مقداردهغه دوردضروریاتومطابق وي ،مثلاً په پخوازمانه کې ټول سفرونه په اسانووغیره باندې کیدل په هغه دورکې ددې قسم په سفرکې کاریدونکې څارویوتعداددیرزیات وو اواوس څرنګه چې سفرپه نورموټرانوکیږي دهغونسل هم کم شو ،همداشان په پخوازمانه کې دپټرول وغیره ضروریات محدودوو مثلاً دهغواستعمال دخارش زده اوبن په جسم باندې دعلاج په طورسره کیدوپه هغه دورکې ددې پیداکیدل هم ډیرلږوو اواوس ټول ژوندپه پټرولوراڅرخې نوځکې هم ددې خزانې راایستلې دي، همدا حقیقت الله ﷻ په دې ایت کې واضح فرمایلې دی﴿وان من شئ الاعندنا خزائنه ومانتزله الابقدرمعلوم ﴾او ﴿اناکل شئ خلقناه بقدر ﴾ همدارازارشاددی﴿ولوبسط الله الرزق لعباده لبغوا فی الارض ولکن ینزل بقدرمایشاء ﴾ .
تاریخ ددې ګواه دی چې دضروریاتومطابق دوسائلو دپیدا وارنظام دقدرت له طرفه کیږي ، حقیقت دادی چې دضبط ولادت داتحریک هم په کوم معقول بنیادباندې قائم نه دی بلکه محض یوسیاسي فریب دی .
اوس خوسوکه سوکه دمعاشیاتوماهرین هم ددې نتیجې لورته راروان دي چې دخاندانې منصوبه بندې داتحریک نهایت مضرت رسونکی دی اوپه معاشي طورسره ددی هیڅ ضرورت نشته ،ددې مسئلې مزیدتفصیل داحقرپه رساله ،ضبط ولادت کې عقلی اوشرعی حیثیت ،کې موجوددی .والله اعلم (درس ترمذی :۳/۴۲۴)
ف:دضبط تولیداواسقاط حمل په مجموعي ډول سره څلورصورتونه جوړیږي (۱)قطع نسل یانس بندی،مثلاً اپریشن په ذریعه سره بچه دانی خارجول په کوم سره چې په دائمي ډول باندې قوت تولیدختم کیږي داصورت بالاتفاق حرام دی خواه که ددې څومره هم فوائدپه نظرراځي خواه که څومره هم قوی داعی ددې موجودوي ،زیات ترزیات دعذربه وي چې ښځه کمزوري ،یاناروغه اودحمل متحمله نه ده نوڅرنګه چې ددې متبادلې لارې موجودې دي په دې وجه داصورت اختیارول جائزنه دی .(۲)مانع حمل تدبیر ،یعنی کومه داسې دوایې استعمالول چې دقوت تولیدله باقی پاتې کیدلوسره سره حمل قرارونه نیسي ددې صورت حکم دادی چې بلاعذرددې اجتیارول مکروه تنزیهی دی ،هوکه ښځه ناروغه وي یادیره کمزوري وي چې دحمل متحمله نه وي یاپه کوم اوږده سفرکې وي یادزوجینوبین ا ـ ه نځې تعلقاتودناسموالي په وجه سره دجلاوالی قصدوي یاله وړاندې څخه دموجود بچې دصحت دخرابیدلوشدیده خطره وي نوددې اعذاروپه وجه سره کوم داسې تدبیرکول چې حمل قرارونه نیسي بلاکراهت جائزدی.(۳)دروح اوژونداثاروله پیداکیدلوڅخه وړاندې اسقاط حمل،یعنی دحمل اخیستلوڅخه وروسته

دځلورومیاشتوله پوره کیدلوځخه وړاندې په کومه ذریعه سره حمل ساقطول داصورت بلاعذرناجائز اوحرام دی ،البته دعذرپه وجه سره ددې گنجائش شته مثلاً دحمل په وجه سره ددې ښځې شیدې وچې شوې اوپه نورو ذرائعوسره دمخکنې بچي دپالنې انتظام ناممکن یامتعذروي ، یاکوم دیندار،ماهره ښځه معاینه وکړې اوداووایې چې له اسقاط حمل ځخه بغیردښځې ژوندیاکوم اندام ته شدیده خطره ده نوددې اعذارو په وجه سره اسقاط حمل جائزدی.(۴)دروح اوژوندانه داثارو له پیداکیدلو ځخه وروسته اسقاط حمل ،یعنی پرحمل باندې له ځلورومیاشتو تیریدلو وروسته حمل ساقطول،داصورت مطلقاحرام دی په هیڅ عذرسره ددې گنجائش نشته.(احسن الفتاوی ۳۴۷/۸:بتغییر)

(۱۲۷)وَلَوْ أُعْتِقَتْ أَمَةٌ أَوْ مُكَاتَبَةٌ خُيِّرَتْ وَلَوْ زَوْجُهَا حُرًّا(۱۲۸)وَلَوْ نُكِحَتْ بِلَا إِذْنٍ فَعَتَقَتْ نَفَذَ بِلَا خِيَارٍ(۱۲۹)فَلَوْ وَطِئَ قَبْلَهُ فَالْمَهْرُ لَهُ وَإِلَّا فَلَهَا

**ترجمه** :اوکه ازاده کړای شوه مینځه یامکاتبه نودې لره به اختیارورکول کیږي که ځه هم ددې خاوندازادوي ،اوکه دې نکاح وکړه بې له اجازې بیاداازاده شوه نونکاح به نافذیږي بې له خیاره ،نوکه وطی کړې وي له دې ځخه وړاندې نومهربه مولی لره وي که نه نو مینځې لره به وي .

**تشریح** :(۱۲۷)که مینځې یامکاتبې دخپل مولی په اجازه سره نکاح وکړه بیادامینځه یامکاتبه ازاده کړی شوه نوداحنافوپه نزدداسې مینځې لره اختیاردی که یې خوښه وي نونکاح دې برقراربږدي اوکه یې خوښه وي نونکاح دې فسخ کړي اوعام ده که دازادي پروخت خاوندازادوي اوکه غلام دمینځې دې اختیارلره په اصطلاح کې خیارعتق ویل کیږي.ددې اختیاردجوازوجه دحضرت عائشه ﷺروایت دی فرمایې چې نبی کریم ﷺحضرت بریره ﷺته اختیارورکړاودحضرت بریره ﷺ خاوندازادوکوم وخت چې داازاده کړې شوه .

**ف**:دامام شافعی اوامام مالک رحمهماالله تعالی په نزددازادي پروخت که خاوندازادوي نودې لره خیارعتق نشته اوکه په دې وخت کې خاوندغلام وو نومینځې لره به خیارعتق حاصل وي ولې چې له حضرت عائشې ﷺ روایت دی﴿ ان النبی ﷺ خیرهاوکان زوجهاعبدا﴾(یعنی نبی کریم ﷺ حضرت بریره ﷺ ته خیارعتق ورکوپه دې حال کې چې ددې خاوندغلام وو)لهذاکه خاوندازادوو نودې لره اختیارنشته . احناف ځواب ورکوي چې په مذکوره روایت کې دانشته چې که خاوندازادوونوازادشده مینځې لره خیارعتق نشته لهذاپه دې روایت سره ددوئ استدلال صحیح نه دی.

(۱۲۸)که مینځې دمولی له اجازت ځخه بغیرنکاح وکړه بیاازاده کړی شوه نونکاح صحیح ده ولې چې رکن نکاح یعنی ایجاب اوقبول ددې له اهل ځخه صادرشوی دی ځکه چې مینځه دعاقله بالغه والی په وجه سره له اهل عبارت ځخه ده باقی دمولی دحق په وجه سره ممنوع وه کوم چې اوس دازادکولوپه وجه سره زائل شولهذادانکاح صحیح ده ،البته مینځې لره به خیارعتق نه وي ولې چې په مذکوره صورت کې دمولی له طرف ځخه دهیڅ قسم جبربغیردی داخاونداختیارکړی دی لهذادې لره به خیارعتق هم حاصل نه وي .

(۱۲۹)که مینځې دمولی له اجازت ځخه بغیرنکاح وکړه بیاخاوندله دې سره وطی وکړه له دې ځخه وروسته مولی خپله دامینځه ازاده کړه نوټول مهربه مولی لره وي ولې چې خاونداسې منافع حاصلې کړي دي کومې چې دمولی مملوک دي لهذادهغوبدل یعنی مهربه هم مولی لره واجب وي .قوله والاالهای وان لم

بطاءها الزوج حتى اعتقها فالمهر لها، یعني که خاوند دمولی له ازدولوڅخه وروسته له مينځې سره وطی وکړه نومهربه ازادې شوي مينځې لره وي ولی چې په دي صورت کې خاونداسې منافع وصول کړي دي کومې چې دمينځې مملوک دي لهذا دهغوبدل یعني مهربه هم مينځې لره واجب وي .

(۱۳۰) وَمَنْ وَطِئَ أَمَةَ ابْنِهِ فَوَلَدَتْ فَادَّعَاهُ ثَبَتَ نَسَبُهُ وَصَارَتْ أُمَّ وَلَدِهِ (۱۳۱) وَعَلَيْهِ قِيمَتُهَا لَا (۱۳۲) عُقْرُهَا وَقِيمَةُ وَلَدِهَا (۱۳۳) وَدَعْوَةُ الْجَدِّ كَدَعْوَةِ الْأَبِ حَالَ عَدَمِهِ (۱۳۴) وَلَوْ زَوَّجَهَا أَبَاهُ وَوَلَدَتْ لَمْ تَصِرْ أُمَّ وَلَدِهِ وَيَجِبُ الْمَهْرُ لَا الْقِيمَةُ وَوَلَدُهُ حُرٌّ

**ترجمه** :اوچاچې وطی کړه دخپل زوی مينځه نودهغې بچی پيداشواوپلاردعوه وکړه دبچی نوثابتيږي دده نسب له ده څخه اوګرځي مينځه دده ام ولد ،اوپرده دمينځې قیمت واجب دی ،نه ددی مهراوددي بچی قیمت ،اودنيکه دعوه دپلاردعوې په شان ده دپلاردنه موجودوالی په وخت کې ،اوکه زوی له پلارسره ددی نکاح وکړه اوبچی پیداشووهغه به دده ام ولدنه وي اومهربه واجب وي نه قیمت اوبچی ازاددي .

**تشریح** :(۱۳۰)که چاخپل زوی له مينځې سره وطی وکړه اوله دي څخه دمدت حمل له تیریدلوڅخه وروسته بچی پیداشوبیاده دعوی وکړه چې دابچی زماڅخه دی نودبچی نسب له واطی څخه ثابتيږي اودبچی موردواطی ام ولدګرځي خواه که دواطی زوی (دمينځې مالک )دده تصدیق وکړي اوکه یې ونه کړي ولی چې پلارلره داولایت حاصل دی چې دی دخپل ځان دبقاء لپاره دخپل زوی دمال مالک شي لقوله ﷺ﴿ انت ومالک لأبیک﴾(ته اوستامال ستادپلاردي )نوپلارلره به داولایت هم حاصل وي چې دبقاء ماء اونسل لپاره دخپل زوی دمينځې مالک شي .

**ف**:دپلاردعوې لپاره دوشرطونه دي یوداچې پلاربه ازادمسلمان وي که هغه غلام یامکاتب یاکافروو نودده دعوی صحیح نه ده ،دوهم شرط دادی چې پرتوله مينځه به دعلوق له وخت څخه بیادعوی تر وخت پوري دابن ملک قائم وي څوک به له ده سره شریک نه وي.

(۱۳۱)قوله وعليه قيمتها اى على الاب قيمة الجارية ،یعني دعلوق پروخت چې دمينځې څومره قیمت دی په پلارباندي هغه لازم دی که څه هم پلارتنګ دسته هم وي ترڅوبقدرالامکان دزوی مال محفوظ وي اودپلارمقصود هم حاصل وي ،همداراز دبقاء نسل حاجت دبقاء نفس ترحاجت کمتردی لهذاپلاردزوی دخورک څښاک دشیانو خوبلاقیمته مالک کیږي مګردمينځې قیمت به ورکوي په قیمت اداء کولوسره مالک ګرځي .

(۱۳۲)قوله لاعقرها اى لايجب على الاب عقر الامة ،یعني په پلارباندي ددي مينځې مهرنه واجبيږي ولی چې پلارددي مينځې مالک ګرځي په دي وجه پرده باندي له دي سره دوطی کولوپه وجه مهرنه لازميږي .اوپه پلارباندي به له دي مينځې څخه دپیداشوی بچی قیمت هم لازم نه وي ولی چې له مينځې سره له وطی کولوڅخه لږوخت وړاندي دامينځه ضرورة دده په ملک کې راځي ترڅودپلاردافعل حرام واقع نه شي نوثابته شوه چې ده وطی په خپل ملک کې کړي ده لهذادبچی حمل دپلارپه ملک کې قرارنیولی دی په دي وجه دی اصلا حردی دده قیمت ورکول لازم نه دی .

(۱۳۳)اوکه پلارنه وو یعني فوت شوی وو یالیونی شوی وو نودنیکه دنسب دعوی داسې ده لکه دپلارنسب دعوی، یعني له نیلکه څخه یې دپلارپه شان نسب ثابتيږي اومينځه دده ام ولدکيږي ولی چې

دفقدان اب په صورت کې دنیکه ولایت ظاهره کیږي ،اوکه نیکه دخپل لمسی له مینځې سره وطی وکړه اوپه دامایینز کې پلار هم ژوندی نوله نیکه څخه نسب نه ثابتیږي ولی چې دپلار په موجودوالی کې جدلره ولایت حاصل نه وي .

(۱۳۴)که زوی دخپلې مینځې نکاح له پلارسره وکړه بیادپلارله نطفې څخه دمینځې بچی پیداشونو دامینځه به دپلارام ولدنه وي اوپه پلارباندي به زوی لره ددي قیمت واجب نه وي هوپه پلارباندي به مهرواجب وي اوددي مینځې هغه اولادچې دپلارله نطفې څخه پیداشوی به ازدوي .څرنګه چې دانه من کل الوجوه دپلارملک ده اونه من بعض الوجوه بلکه من کل الوجوه دزوی ملک ده لهذاله دی سره دپلارنکاح کول صحیح ده کله چې نکاح صحیح شوه نودامینځه به دپلارام ولدهم نه وي لهذپه پلارباندي دمینځې قیمت یاددي داولادقیمت هم واجب نه وي البته پلارځرنګه چې له دي سره په نکاح کولوپرخپل ځان باندي دمهرالتزام کړی دی په دي وجه به په پلارباندي دمینځې مهرواجب وي . اودمینځې اولابه ازادوي وجه یې داده چې دمینځې اولاددمولی ملک وي اودلته مولی له مینځې څخه دپیداشوی بچی وروردی اوقاعده ده چې څوک دخپل محرم مالک شي هغه ازادیږي لقوله ﷺ ﴿من مَلَکَ ذَارَحِمٍ مَحْرَمٍ منه عَتَقَ علیه﴾(څوک چې مالک شي دخپل ذی رحم محرم هغه پرده ازادیږي ).

| (۱۳۵)حُرَّةٌ قالت لِسَیِّدِ زَوجِها أَعْتِقْهُ عَنِّي بِألْفٍ فَفَعَلَ فَسَدَ النِّکَاحُ (۱۳۶)وَلَوْ لَم تَقُلْ بِألْفٍ لَا یَفْسُدُ وَالْوَلاءُ له |
|---|

**ترجمه** :یوي ازادي ښځې دخپل خاوندمولی ته وویل چې دی ازادکړه زماله طرف څخه دزروپه عوض نوهغه ازادکړنو فاسدیږي نکاح ،اوکه یې داونه ویل چې دزروپه عوض نونه فاسدیږي نکاح اوولاء به مولی لره وي .

**تشریح** :(۱۳۵)که کومه ازاده ښځه دکوم غلام په نکاح کې وي اوښځې دخپل خاوندمولی ته وویل چې داغلام زماله طرف څخه دیوزردرهمه په عوض کې ازادکړه نوکه مولی ازادکونوداثمه ثلاثه په نزدددوی نکاح فاسده شوه ولی چې ازادي دآمرله طرف څخه واقع شوه ګویاآمروویل بعه منی بالف هم کن وکیلی بالاعتاق (داغلام په ماخرڅ کړه بیازماله طرفه دده دازادولووکیل جوړشه )اودمولی داقول اعتقت ،په منزله دبعته منک واعتقته عنک (داغلام ماپه تاخرڅ کړاوستاله طرفه مې ازادکو)دی ،اوآمردلته دازادشوی ښځه ده نوله ازادي څخه وړاندي ښځه دخپل خاوندمالکې دجوړیدلوپه وجه سره نکاح فاسده شوه ولی چې په دواړوملکونو(یعنی مِلک نکاح اومِلک رقبه )کې منافات دی .

(۱۳۶)اوکه ښځې دخپل خاوندمولی ته وویل چې دی زماله طرفه ازادکړه اوبالف یې ونه ویل یعنی مال یې ذکرنه کونودطرفینوپه نزدنکاح فاسده نه شوه حال داچې دامام ابویوسف رحمه الله په نزدپه دي صورت کې هم دسابقه صورت په څیرنکاح فاسدیږي .دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دادی چې څرنګه چې په تیرشوی صورت کې موږاقتضاء بیع مقدره ګرځوله همداشان به دلته هم تملیک بلاعوض یعنی هبه مقدره ګرځوونوګویاښځې دخاوندمولی ته وویل ،اول دی ماته هبه کړه بیازماله طرفه په وکیل جوړیدلوسره دی ازادکړه مولی وویل اعتقت یعنی ماولاداغلام تاته هبه کویاستاله طرفه وکیل جوړشوم اودی مې

ازادکړ.دطرفینودلیل دادی چې دبنځې داویل چې اعتقه منی اودمولی داویل اعتقت هبې لره متضمن نه دي ولی چې په هبه کې قبض شرط دی کوم چې دلته نه شوموجودلهذادا دبنځې له طرفه دخپل خاوندداازادي لپاره یودرخواست دی نه بیع اونه هبه ده ،نوغلام دبنځې په ملک کې له راتلوڅخه بغیرازادیږي ځکه نکاح برقراره ده .

یادطرفینوپه نزدپه دي صورت کې دازادشوی غلام ولامعتق یعنی مولی لره ده ولی چې داعتاق وقوع په دي صورت کې دمولی له طرفه شوي ده ،حال داچې دامام ابویوسف رحمه الله په نزدولاءبنځې لره ده ولی چې دده دمسلک مطابق داعتاق وقوع دبنځې له طرفه شوي ده .

ف:فتوی دطرفینوپرقول ده ،لان قولهما قول المتون,وایضا اخر صاحب الهدایة دلیلهما وهذاعنده ترجیح قول الراجح.

## بَابُ نِكَاحِ الْكَافِرِ

داباب دکافرد نکاح په باره کې دی.

مصنف رحمه الله اول دغلامانودنکاح احکام بیان کړل اوس دکافردنکاح احکام بیانوی دکافردنکاح دبیان دموخرکولووجه داده چې دغلام حال له کافرڅخه اعلی دی اوکافرادنی دی لقوله تعالی ﴿ولعبدمومن خیرمن مشرک ولواعجبکم﴾(اوالبته غلام مسلمان بهتردی له مشرک څخه که څه هم هغه تاسې ته ښه معلوم شي).

ف:ددي باب مسائلې په دریواصولوباندي مبنی دي (۱)کومه نکاح چې ددومسلمانانوترمنځ صحیح ده هغه به ددوکافرانوترمنځ هم صحیح وي لقوله تعالی ﴿وامراته حمالة الحطب﴾ باری تعالی دکافرطرفه ته دبنځې نسبت کړي دی وقال ﷺ ﴿ولدت من نکاح لامن سفاح﴾(زه له نکاح څخه پیداشوی یم نه له زناڅخه ) (۲)کومه نکاح چې دمسلمانانوترمنځ دفقدان شرط په وجه سره فاسده وي مثلاًګواه نه وي دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددکفارودا سې نکاح جائزده په دي شرط چې ددوئ دعقیدې مطابق وي ،اوله اسلام راوړلوڅخه وروسته به دوئ په همدغه نکاح برقرارپریښودل کیږي(۳)کومه نکاح چې دحرمت محل په وجه سره حرامه وي مثلاًله خوروغیره سره نکاح وکړي نویوقول دادی چې دانکاح ددوئ په منځ کې جائزه ده مګردمشائخ عراق په نزددا سې نکاح به فاسده وي .

(۱۳۷)وَزَوَّجَ كَافِرٌ بِلَا شُهُودٍ أَوْ فِي عِدَّةِ كَافِرٍ وَذَا فِي دِينِهِمْ جَائِزٌ ثُمَّ أَسْلَمَا أُقِرَّا عَلَيْهِ(۱۳۸)وَلَوْ كَانَتْ مَحْرَمَهُ فُرِّقَ بَيْنَهُمَا(۱۳۹)وَلَا يَنْكِحُ مُرْتَدٌّ أَوْ مُرْتَدَّةٌ أَحَدًا

**ترجمه** :نکاح وکړه کوم کافرله ګواهانوڅخه بغیریادبل کافرپه عدت کې اوداددوئ په دین کې جائزوو بیاداوړواسلام قبول کړنوبرقراربه پریښودل کیږي دوئ دواړه پرهمدغه نکاح باندي ،اوکه محرمه وه نوتفریق به کیږي ددوئ په منځ کې ،اونکاح دي نه کوي مرتدسړی یامرتده ښځه له هیچاسره.

**تشریح**:(۱۳۷) که کوم کافرله کافري ښځې سره بغیرله ګواهانونکاح وکړه یاښځه دکوم بل کافرپه عدت کې وه هغه نکاح ورسره وکړه اوحال داچې په داشان نکاح کول ددوئ په دین کې جائزه وه بیازوجین دواړه مسلمانان شول نودامام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دادی چې دواړه به پرهمدي نکاح پریښودل کیږي ولی چې

دنکاح پروخت دحق شرع لپاره حرمت ثابتول ممکن نه دي ځکه چې کفارپه فروعوسره مخاطب نه دي ،اونه دزوج دحق لپاره حرمت ثابتيږي ولي چې ددې زوج دحرمت اعتقادنه لري ،نوثابته شوه چې ددوئ ترمنځ په دې ډول سره نکاح کول ابتداء صحيح ده نوبقاء به هم صحيح وي ولي چې دبقاء په حالت کې دګواهانووجودشرط نه دی همدا وجه ده چې له نکاح څخه وروسته دګواهانوپه مرګ سره نکاح نه باطليږي ،همداشان عدت له حالت بقاء دنکاح سره منافي نه دی .

(۱۳۸)قوله ولوكانت محرمة فرق بينهما اى ولوكانت منكوحة الكافرمحرمة للزوج فرق بينهما،يعني که کوم کافرد خپل محارمو ابديه سره نکاح وکړه مثلامجوسي (اتش پرست)له خپلې موريا خپلې لورسره نکاح وکړه بيادوئ دواړه يايو مسلمان شو ،يادکفرپه حالت کې دواړوکوم مسلمان حاکم ته مقدمه پيښ کړه نوپه دواړوکې به تفريق کيږي ولي چې ښځه دمحرميت په وجه سره محل نکاح نه ده اوکوم حکم چې دمحل طرف ته راجع کيږي په هغه کې ابتداء اوبقاء برابردي نولکه څرنګه چې ابتداء دا ښځه دده لپاره محل نکاح نه ده همداشان له اسلام څخه وروسته هم هغه محل نکاح نه ده .

**ف**:دامام صاحب دقول صحيح مطابق داډول نکاح ددوئ په منځ کې صحيح ده حتی که له دواړو څخه کوم يوه له قاضي څخه دتفريق غوښتنه وکړه نوقاضي به ددوئ په منځ کې تفريق نه کوي اوکه ښځې دنفقې مطالبه وکړه نوقاضي به ددې لپاره دنفقې حکم کوي .دصاحبينوپه نزدددوئ په منځ کې په دې ډول سره نکاح باطله ده البته له مرافعي اواسلام راوړلو څخه وړاندي موږدوئ لره اعراضاتعرض نه کوو نه تقريرا ،همدايوروايت له امام صاحب رحمه الله څخه هم دی .

(۱۳۹)مرتدکس له يوي ښځې سره هم نکاح نشي کولی نه له مسلماني ښځې سره اونه له کافري ښځې سره اونه له مرتدې سره ولي چې مرتدخوواجب القتل دی ده ته چې کوم مهلت ورکول کيږي هغه صرف ددې لپاره چې ترڅودی غور اوفکروکړي ،همداشان مرتده ښځه هم نکاح نشي کولی نه له مسلمان سره اونه له کافرسره اونه له مرتدسره ولي چې مرتده هم دغوراوفکرلپاره محبوسه وي.

(۱۴۰)وَالْوَلَدُيَتْبَعُ خَيْرَ الْأَبَوَيْنِ دِينًا(۱۴۱)وَالْمَجُوسِيُّ شَرٌّ مِنَ الْكِتَابِيِّ(۱۴۲)وَإِذَاأَسْلَمَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ عَرَضَ الْإِسْلَامَ عَلَى الْآخَرِ فَإِنْ أَسْلَمَ(۱۴۳)وَإِلَّا فَرَّقَ بَيْنَهُمَا وَإِبَاؤُهُ طَلَاقٌ(۱۴۴)لَا إِبَاؤُهَا

**ترجمه**:اوبچی به تابع وي په مورا وپلارکې دهغه کوم چې بهتروي ددين په اعتبارسره ،اومجوسي بددی تريهودی ،اوکه اسلام قبول کوله زوجينو څخه کوم يوه نوپيش به کړای شي اسلام پرهغه بل باندي نوکه هغه اسلام قبول کړنوبهترده ،که نه نو تفريق به وکړای شي ددواړوترمنځ اودخاوند انکارکول طلاق دی نه دښځې انکارکول.

**تشريح**:(۱۴۰)ولدپه موراوپلارکې چې کوم يوددين په اعتبارسره ښه وي دهغه تابع وي مثلاکه احدالزوجين مسلمان وي اوبل کافروي نوبچی به دمسلمان پردين وي ولي چې په دې کې دبچي لپاره په دنيااواخرت کې نظرشفقت دی په دنياکې خوداچې له ده سره به دکافرانوپه شان سلوک نه کيږي اوپه اخرت کې داچې دجهنم له عذاب څخه به نجات ومومي.

(۱۴۱)مجوسی اوبت پرست له اهل کتاب څخه ډيربدي ولی چې اهل کتاب په احکاموکې مسلمانانوته ډيرقريب دي په دي وجه چې له کتابيه ښځې سره نکاح جائزده همداشان داهل کتاب ذبيحه جائزده حال داچې له مجوسی اوبت پرست سره نه نکاح جائزده اونه ددوئ ذبيحه حلاله ده لهذاکه له زوجينوڅخه يواهل کتاب وو اوبل مجوسی يابت پرست وو نوبچی به کتابی وي ولی چې په دي کې دبچی لپاره يوقسم شفقت دی .

(۱۴۲)که له زوجينوڅخه يومسلمان شومثلاښځه مسلمانه شوه اوددي خاوندکافروونوکه مجنون ياکوچنی نه وي اوپه اسلام پوهيږي نوقاضی به خاوندته اسلام پيش کړي که دقاضی په اسلام پيښولوسره خاوندمسلمان شونوفبهاونعمت، يعنی داښځه به دده ښځه وي اونکاح به بدستورقائمه وي ولی چې منافی نکاح نه دی موجودشوی .

(۱۴۳)قوله والافرق بينهماواباءه طلاق ای وان لم يسلم الاخرفرق بين الزوجين واباء الزوج عن الاسلام طلاق ،يعنی که هغه بل له اسلام قبلولوڅخه انکاروکړنوددي دوه صورتونه دي يوداچې هغه بل خاونددوي يعنی خاوندله اسلام قبلولوڅخه انکاروکړنوقاضی به ددوئ دواړوترمنځ تفريق کوي ولی چې مسلمانه ښځه دکافرپه نکاح کې پاتې کيدل جائزنه دي ،دوهم صورت دادی چې انکارکونکې ښځه وي يعنی دخاوندله مسلمانيدلوڅخه ورروسته پرښځه اسلام پيش کړل شومګردي له اسلام قبلولوڅخه انکاروکړ نوکه ښځه مجوسی يابت پرسته وغيره وه نوقاضی به ددوئ ترمنځ تفريق وکړي ولی چې له کتابی ماسواله نوروکافروښځوسره دمسلمان کس نکاح جائزنه ده اوکه ښځه اهل کتاب وه نوقاضی به ددوئ ترمنځ تفريق نه کوي ولی چې کتابيه ښځه دمسلمان کس په نکاح کې پاتې کيدل صحيح دي .

دزوج په طرف کې له اسلام څخه دانکارپه نتيجه کې چې قاضی کوم تفريق وکړي نوداتفريق دطرفينوپه نزدطلاق بائن دی ولی چې دخاوندله طرفه امساک بالمعروف فوت شولهذاتسريح بالاحسان متعين دی اوتسريح بالاحسان کې قاضی دخاوندقائم مقام دی .دامام ابويوسف رحمه الله په نزدداتفريق طلاق نه دی بلکه دنکاح فسخ ده ولی چې دايوداسی فعل دی کوم چې دښځې له طرفه هم متصوردی اوکوم فعل چې دښځې له طرف څخه هم متصوروي په هغه سره طلاق نه واقع کيږي.

ف:دطرفينوقول مفتی به دی لمافی الدرالمختار:(واباء المميزواحدابوی المجنون طلاق )فی الاصح ،وقال ابن عابدين :تحت قوله فی الاصح يشيرالی انه فی غيرالاصح يكون فسخاابوالسعود.(الدرالمختارمع الشامية:۲/۳۲۳)

(۱۴۴)قوله لااباءهااى لايكون اباء المراة عن الاسلام طلاقا،يعنی که ښځې له اسلام قبلولوڅخه انکاروکړ اوقاضی ددوئ په منځ کې تفريق وکونوداتفريق بالاتفاق طلاق نه دی ولی چې طلاق دښځې له طرفه نشې کيدی اوځرنګه چې ښځه دطلاق اهليت نه لري ځکه ددي دانکارپه صورت کې قاضی په تسريح بالاحسان کې ددي قائم مقام نشي کيدای ولی چې تسريح دښځې له طرف څخه متصورنه ده .

(۱۴۵)وَلَوْ أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا ثَمَّةَ لَمْ تَبِنْ حَتَّى تَحِيضَ ثَلَاثًا(۱۴۶)وَلَوْ أَسْلَمَ زَوْجُ الْكِتَابِيَّةِ بَقِيَ نِكَاحُهَا(۱۴۷)وَتَبَايُنُ الدَّارَيْنِ سَبَبُ الْفُرْقَةِ(۱۴۸)لَا السَّبْيُ(۱۴۹)وَتُنْكَحُ الْمُهَاجِرَةُ الْحَائِلُ بِلَا عِدَّةٍ

**ترجمه**: اوکه اسلام قبول کړله زوجینو څخه کوم یوه په دارالحرب کې نو ښځه به نه جدا کیږي ترڅو چې دې ته
دري حیضه ورنشي، اوکه اسلام قبول کړ دکتابیه ښځې خاوند نو باقي به پاتې وي د دوئ نکاح،
او د دارینو تبائن سبب فرقت دی، نه قید کول، او نکاح کولی شي هجرة کونکې غیر حامله ښځه بغیرله عدت
تیرولو.

**تشریح**: (۱۴۵) که په دارالحرب کې احد الزوجین اسلام قبول کړ او دوهم کافر وو نو صرف دکوم یوه په اسلام
قبلولو سره به دزوجینو په منځ کې تفریق نه کیږي بلکه که ښځه ذوات الحیض څخه وه نو له دري
حیضونو تیرولو وروسته به فرقت واقع کیږي اوکه ائسه وه نو له دري میاشتو تیریدلو وروسته به فرقت واقع
کیږي اوکه حامله وه نو دبچي له پیدا کیدلو څخه وروسته به فرقت واقع کیږي دا په دې وجه چې صرف اسلام
قبلول دفرقت سبب نه دی ولی چې اسلام قبلول طاعت دی او طاعت دسلب نعمت لپاره دسبب
جوړیدلو صلاحیت نه لري او په دوهم باندي اسلام عرض کول په دارالحرب کې دموجود والی په وجه سره
متعذر دی ولی چې ددارالحرب په انسانانو باندي دمسلمانانو بادشاه ولایت نه لري حال دا چې ددفع
فساد لپاره فرقت هم ضروري دی لهذا مونږ شرط فرقت (دري حیضه تیرول) دفرقت قائم مقام وګرځوی
او دري حیضه تیرول دفرقت شرط ځکه دی چې په طلاق رجعی کې په دري حیضه تیریدلو سره فرقت واقع
کیږي. نو له دري حیضه تیرلو څخه وروسته به دا پرخپل خاوند باندي بائنه ګرځي خواه که مدخوله وي اوکه
غیر مدخوله وي.

**ف**: بیا په دې کې اختلاف دی چې دا فرقت طلاق دی اوکه نه دی. دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد دا فرقت طلاق
نه دی ولی چې دا حکما واقع شوی دی په تفریق قاضی سره نه ده واقع شوی، له صاحبینو څخه یو روایت
همدا دی، دوهم روایت دا دی چې دا فرقت طلاق نه شمارل کیږي، او دا فرقت که قبل الدخول وو نو بالاتفاق
پر دې ښځه باندي له فرقت وروسته بله عده نشته او که مدخول بها وه نو دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد او س هم
عده نشته. دصاحبینو په نزد په دري نورو حیضونو سره بله عده تیرول پر دې لازمه ده.

(۱۴۶) که دکتابیه ښځې خاوند مسلمان شو او ښځه پرخپل مذهب پاتې شوه نو دوئ دواړه به په
خپله نکاح برقرار پاتې کیږي ولی چې دمسلمان کس او کتابیه ښځې ترمنځ ابتداء نکاح صحیح ده نو بقاء به
په طریقه اولی سره صحیح وي ولی چې بقاء له ابتداء څخه اسهله ده.

(۱۴۷) تبائن دارین دفرقت سبب دی چنانچه که احد الزوجین مسلمان شو او له دارالحرب څخه
دارالاسلام ته راغی نو په دواړو کې به دتبائن دارین په وجه سره فرقت واقع شي ولی چې تبائن دارین له
حصول منافع نکاح سره منافی دی او کوم شئ چې دنکاح دمنافع له حصول سره منافی وي هغه نکاح قطع
کوي ځکه چې دنکاح وضع دمنافع دحصول لپاره شوي ده.

(۱۴۸) قوله لاالسبی ای لیس السبی سبب الفرقة، یعنی که احد الزوجین مسلمانانو ګرفتار کړ نو په صرف
ګرفتاري سره فرقت نه واقع کیږي هو که یې هغه دارالاسلام ته راوستی نو فرقت واقع کیږي هغه هم دتبائن
دارین په وجه سره نه دسبی په وجه یعنی ګرفتاري په وجه سره، همدا وجه ده که زوجین دواړه ګرفتار شول

نوددوئ ترمنځ به فرقت نه واقع کیږي ولی چې تبائن دارین موجودنه شوصرف دومره خبره ده چې په گرفتاریدلوسره په دواړورقیت طاری شواوگرفتاري اورقیت له نکاح سره منافی نه دي .
ف:دامام شافعی رحمه الله په نزددفرقت سبب گرفتاري ده تبائن دارین نه دی ولی چې گرفتاري مقتضی ده ددي چې ملک به گرفتارکونکې لره فارغ وي لهذادادملک نکاح انقطاع لره مستلزم دی ،امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې په گرفتاري سره ملک رقبه ثابتیږي اوملک رقبه لکه څرنگه چې له ابتداء نکاح سره منافی نه دی همداشان له بقاء نکاح سره هم منافی نه دی لهذاپه محض گرفتارولوسره فرقت نه واقع کیږي .
(۱۴۹)که کومه ښځه له دارالحرب څخه دارالاسلام ته هجرت وکړي خواه که مسلمانه وي اوکه ذمیه وي،اوکله هم دارالحرب ته دتللواراده نه لري نوله دي ښځې سره فی الحال نکاح کول جائزده.اودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدپردي عدة تیرول واجب نه دی لقوله تعالی ﴿ولاجناح علیکم ان تنکحوهن﴾ الله تعالی له هجرت کونکوښځوسره نکاح کول مطلقامباح گرځولي ده نودعدت شرط لگول په نص باندي زیادت دی په دي وجه داسې ښځې لره دعدت دتیرلوحکم نشته .اوکه هجرت کونکې ښځه حامله وي نوله وضع حمل څخه وړاندي به نکاح نه کوي ،داقول امام محمد رحمه الله له امام ابوحنیفه رحمه الله څخه روایت کړی دی وجه یې داده چې داحمل له غیر(یعني حربی کافرڅخه )څخه ثابت نسب دی نوکله چې دنسب په حق کې کافرحربی لره ددي فراش والی ظاهرشونوله نکاح څخه دمنع کولوپه حق کې به هم احتیاطاددي فراش والی ظاهریږي لهذانکاح نشې کولی .
ف:دصاحبینوپه نزدپرداسې ښځه باندي عدت تیرول واجب دی ولی چې پردي ښځه له خپل زوج څخه فرقت دارالاسلام ته له داخلیدلوڅخه وروسته واقع شوی دی اوهرهغه فرقت چې هغه په دارالاسلام کې واقع شې پرهغه داسلام احکام جاري کیږي اوعدت هم له احکاموداسلام څخه یوحکم دی لهذاعدت به واجب وي .دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی کمافی شرح التنویر:(ومن هاجرت الینا)مسلمة اوذمیة(حائلابانت بلاعدة)فیحل تزوجهااما الحامل فحتی تضع علی الاظهرلاللعدة بل لشغل الرحم بحق الغیر،وقال ابن عابدین :بخلاف قول الکنزوتنکح المهاجرة الحائل بلاعدة فانه للاحترازعن الحامل کماعلمت لکنه یوهم ان الحامل لهاعدة کماتوهم ابن ملک وغیره ولیس کذالک (الدرالمختارمع ردالمحتار:۲/۲۵۴)
ف:دلته داتفصیل زده کول هم ضروري دی چې ددي وخت علماؤدملکونودري قسمه جوړکړي دي .
(۱)دارالاسلام. (۲)درالحرب .(۳)دارالامن .دارالاسلام هغه مملکت دی چیرته چې مسلمانانولره داسې سیاسې موقف حاصل وي چې هغوئ دټول اسلامې احکاموپرنفاذقادروي .دارالحرب هغه مملکت دی چیرته چې کافرانولره امن حاصل وي اومسلمانان ښهري له امن څخه محروم وي ،اومسلمان هلته دمذهبې حقوقواوعباداتو،جمعه وعیدین وغیره له علانیه سرته رسولوڅخه قاصروي ،اودارالامن هغه ملک دی چیرته چې واک اواقتداردغیرمسلمانانوپه لاس کې وي لیکن مسلمانان مامون وي مسلمان ددعوت دین فریضه سرته رسولی شې اوپرهغواسلامې احکاموکاموله چې داقتدارضرورت نشته عمل کولی شې .(ماخوذازفقهی مسائل :۸۲/۴)

ف:ددارالاسلام احکام دادي ،داسلام دټولوشخصي اواجتماعي قوانینوتنفیذ،ددارالکفردمهاجرینو مدول ،په دارالحرب کي دراګیرشویومسلمانانواعانت ،جهاداوداسلامي سرحداتودتوسیع سعی کول،ددارالحرب احکام دادي، چي هلته به داسلام قانونِ جرم اوسزانه جاري کیږي ،ددارالحرب دومسلمانانو فیصله به ددارالاسلام قاضی نشي کولی،ددارالحرب په اوسیدونکواسلحه نشي خرڅول کیدای ،ددارالحرب کوم اوسیدونکی ته به ددارالاسلام له شهریت حاصلولوبغیرله یوه کال څخه زیات داوسیدلواجازه نه ورکول کیږي ،له مسلمان زوجینوڅخه که کوم یوله دارالحرب څخه دارالاسلام ته هجرت وکړي یادارالاسلام پریږدي دارالحرب وطن جوړکړي نودتباٸن داریه وجه سره په دواړوکي فرقت واقع کیږي ،مسلمان تاجرپه دارالحرب کي داسلام دمالي قوانینوپابندنه وي ، ددارالامن احکام دادي ،هلته به اسلامي حدودنافذنه وي ،دهغه ځای ددومسلمانانو فیصله ددارالاسلام قاضی نشي کولی ،دهغه ځای په مسلمانانوبه هجرت واجب نه وي ،دهغه ځای ددفاعی قوت کي اضافه کولوکي مددکول به دمسلمانانولپاره صحیح وي لکه څرنګه چي صحابه کرامو ﷺ دشاه حبش نجاشي ددښمنانوپه مقابل کي دده مددکړی وو په دي شرط چي هغه به له کوم مسلمان ملک سره په جنګ بوخت نه وي ،له زوجینو څخه که کوم یوله دارالامن څخه دارالاسلام ته راغی نوددوئ په منځ کي به صرف دتباٸن داریه وجه سره فرقت نه واقع کیږي ولی چي دصلح اوامن دفضاء په وجه سره تګ راتګ اودحقوق زوجیت تکمیل ممکن دی .(حواله بالا)

ف:په موجوده دورکي له غیرمسلم ملکونوڅخه یوقسم خوهغه دي کوم چي داسلام یامطلقامذهب معاندین دي لکه دکمیونسټ بلاک ممالک ،دوهم قسم هغه ملکونه دي چیرته چي دمغربي طرز جمهوریت رائج وي .په کوموکي چي یاخودسلطنت هیڅ مذهب نه وي اوټول قومونه په خپل مذهب په عمل کولوکي ازادوي لکه هندوستان ،یاخودسلطنت مذهب خووي لیکن نوراقلیتونه هم په خپلو مذهبي معاملاتوکي ازادوي لکه امریکه،برطانیه وغیره،زمایه خیال داولی نوع ممالک یعنی کیمونسټ ممالک ،ددارالحرب په زمره کي دي که څه هم په بعض کمیونسټوممالکوکي دمذهبی ازادي اواظهاررائ وغیره په حقوقوکي څه نرمي پیداکړل شوي ده ،مګربیاهم هغه تراوسه دارالحرب دي ،له دي څخه ماسواچي کوم ممالک دي هغه دارالامن کي شمارل کیدلی شي .(حواله بالا)

(۱۵۰)وَارْتِدَادُ أحَدِهِمَا فَسْخٌ فِي الحَالِ(۱۵۱)فَلِلْمَوْطُوءَةِ الْمَهْرُ وَلِغَيْرِهَا النِّصْفُ إِنْ ارْتَدَّ(۱۵۲)وَإِنْ ارْتَدَّتْ لا(۱۵۳)وَالإِبَاءُ نَظِيرُهُ(۱۵۴)وَلَوْ ارْتَدَّا وَأَسْلَمَا مَعًا لَمْ تَبِنْ(۱۵۵)وَبَانَتْ لَوْ أَسْلَمَا مُتَعَاقِبًا

**ترجمه** :اومرتدکیدل داحدالزوجین فی الحال فسخ نکاح ده ،نودموطوءه لپاره ټول مهردی اودغیرموطوءه لپاره نصف مهردی که مرتدشو ،اوکه ښځه مرتده شوه نومهرنشته ،اوانکارکول ددي نظیردی ، اوکه دواړه مرتدشول اودواړواسلام قبول کړیایوځای یاجلاجلانوښځه به نه جلاکیږي ،اوبائنه کیږي به که دواړواسلام قبول کړیوله بل څخه وروسته .

**تشریح**:(۱۵۰)که احدالزوجین له اسلام څخه مرتدشو(العیاذبالله )نودشیخینورحمهماالله تعالی په نزدفي الحال فرقت واقع کیږي اودافرقت طلاق نه دی ولی چې ردت له نکاح سره منافی دی ځکه چې ردت له عصمت نفس اوعصمت مال سره منافی دی همداوجه ده چې دمرتدپه وژونکې باندي نه قصاص شته اونه دیت،لهذادمرتدملک اونکاح باطلیږي،اوطلاق له نکاح سره منافی نه دی همداجه ده چې خاوندله طلاق ورکولوڅخه وروسته دوهم ځل نکاح کولی شي لهذاارتدادپه وجه سره چې کوم فرقت وي هغه به طلاق نه وي .دامام محمد رحمه الله په نزدکه ردت دخاوندله طرف څخه وي نودافرقت طلاق دی که نه نو طلاق نه دی .

**ف**:دشیخینوقول راجح دی ،لماقال المفتی غلام قادر النعمانی:القول الراجح هوقول الشیخین,قال العلامة ابن الهمام:وعامة مشائخ بخاری الزموابالفرقة وجبرهاعلی الاسلام وعلی النکاح مع زوجهاالاول لان الحسم بذالک یحصل.(القول الراجح:۱/۳۰۱)

(**۱۵۱**)نوکه خاوندمرتدشواوپه ښځه یې دخول هم کړی وو نوښځې لره به ټول مهروي ولی چې ددخول (یعنی جماع )په وجه سره مهرمؤکدشوی دی ،اوکه خاونددخول نه وي کړی نوښځې لره به نصف مهروي ولی چې دافرقت دزوج له طرف څخه قبل الدخول راغلی دی لهذادادطلاق قبل الدخول سره مشابه دی نولکه څرنګه چې د طلاق قبل الدخول صورت کې نصف مهرواجبیږي همداشان دفرقت قبل الدخول په صورت کې به هم نصف مهرواجب وي .

(**۱۵۲**)قوله وان ارتدت لا ای ان ارتدت المرأة قبل الدخول لایجب لهاشئ،یعنی که ښځه مرتده شوه نوکه له دخول څخه وړاندي وو نوداسې ښځې لپاره به مهرنه وي ولی چې دي دارتدادپه وجه سره له خاوندڅخه بضع منع کړه نودادقبل القبض دبائع له طرفه دمبیع له هلاکولوسره مشابه دی اوپه داسې صورت کې څرنګه چې پرمشتري څه ضمان یاثمن وغیره نه لازمیږي، نودلته به هم دخاوندپرذمه هیڅ واجب نه وي . اوکه ښځه بعدالدخول مرتده شوه نوښځې لره به ټول مهروي ولی چې ددخول په وجه سره مهرموکد شوی دی اوس دسقوط احتمال نه لري .البته دعدت دزماني نفقه بهٔ دښځې لپاره واجبه نه وي ولی چې فرقت دښځې له طرفه راغلی دی نودناشزه والی په وجه سره به دي لره نفقه نه وي .

(۱۵۳)قوله والاباء نظیره ای اباء احدهماعن الاسلام بعداسلام الاخرنظیرالارتداد،یعنی داحدالزوجین له اسلام څخه انکار دارتدادپه شان دی لهذادبعدالدخول په صورت کې چې دکوم یوه له طرف څخه هم انکارعن الاسلام موجودشي نوټول مهربه واجب وي ،اوکه انکارقبل الدخول وي نوکه دزوج له طرف څخه وو نونصف مهرواجب دی اوکه دښځې لهٔ طرف څخه وو نوهیڅ هم نه واجبیږي .

(۱۵۴)که زوجین یوځای مرتدشول بیادواړه یوځای مسلمانان شول نودوئ دواړه به استحسانا په خپله نکاح پاتې وي دتجدیدنکاح ضروت نشته .دامام زفر رحمه الله په نزدنکاح باطلیږي دقیاس تقاضاهم همداده ولی چې دیومرتدکیدل له نکاح سره منافی دی نوددواړومرتدکیدل به په طریقه اولی له نکاح سره منافی وي ولی چې ددواړوپه مرتدکیدلوکې دیوه مرتدکیدل هم موجودیږي .وجه استحسان داده چې بنوحنیفه (دیوي قبیلې نوم دی )له زکوة څخه په انکارکولوسره مرتدشوي وو بیاټول مسلمانان شول مګرصحابه کرامو رضی الله عنهم دوئ ته دتجدیدنکاح حکم ورنه کړلهذادامام زفر رحمه الله قیاس داجماع صحابه رضی الله عنهم په وجه سره متروک دی .

(۱۵۵) قوله وبانت لو اسلما متعاقبا اى بانت المراة لو اسلم المرتدان حال كون اسلام كل واحد منهما متعاقبا لاسلام الاخر يعنى که زوجين وروسته ورانديٍ مسلمانان شول نوپه دواړوکې به فرقت واقع کيږي ولې چې کله يوه اسلام قبول کړنو دهغه بل په ارتداد دپاتې کيدلو په وجه سره دزوجينو په منځ کې اختلاف في المذهب موجود شو لهذا فرقت ثابتيږي.

## باب القسم

### داباب دښځو دقسم په بيان کې دى

قسم بفتح القاف وسكون السين دقسمت الشئ فانقسم مصدر دى، اوشرعاً خاوند دخپلو منکوحاتو په منځ کې په نفقه، سکنى، مأکولات، مشروبات، ملبوسات اوبيتوتت کې برابري کولو ته ويل کيږي، له منکوحاتو سره په جماع کې برابري کول شرط نه دى، قسم بکسر القاف دحصه په معنى دى اوقسم دقاف اوسين په فتحه سره ديمين په معنى دى.

دمنکوحاتو په منځ کې عدل کول په کتاب الله اوسنت رسول الله دواړو سره ثابت دي قال الله تعالى ﴿وَلَنْ تَسْتَطِيعُوا أَنْ تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ﴾ (اوستاسي په وس کې خوکله هم دانشته چې دټولو ښځو په منځ کې برابري وکړئ که څه هم ستاسي زړه څومره هم وغواړي نوتاسي بالکل يوه طرف ته مه مائله کيږئ چې پريږدئ تاسي دالکه ځوړنده) وقال ﷺ ﴿من كانت له امرأتان فمال الى احداهما جاء يوم القيامة وشقه مائل﴾ (يعنى دچاچې دوي ښځې وي اوهغه په قسم کې ديوي طرف ته مائل شونودقيامت په ورځ به په داسې حال کې راځي چې دهغه يوطرف به مائل وي).

مصنف رحمه الله له دي ځخه وړاندې په يوځاى کې دابيان فرمايلې وو چې ازادکس له څلورو ښځو سره نکاح کول جائزدي اوغلام لره له دوو ښځو سره نکاح کول جائزدي نود څلورو اودوو ښځو په صورت کې قسم اوعدل کول ضروري دي ځکه مصنف دمتعددو ښځو په منځ کې دعدل تفصيل بيانوي.

(۱۵۶) اَلْبِكْرُ كَالثَّيِّبِ وَالْجَدِيدَةُ كَالْقَدِيمَةِ وَالْمُسْلِمَةُ كَالْكِتَابِيَّةِ فِيهِ (۱۵۷) وَلِلْحُرَّةِ ضِعْفُ الْأَمَةِ (۱۵۸) وَيُسَافِرُ بِمَنْ شَاءَ مِنْهُنَّ وَالْقُرْعَةُ أَحَبُّ (۱۵۹) وَلَهَا أَنْ تَرْجِعَ إِنْ وَهَبَتْ قَسْمَهَا لِلْأُخْرَى

**ترجمه:** باکره دثيبې په شان ده اونوي دزړې په شان ده اومسلمانه ښځه دکتابيې په شان ده په نوبت کې، اوازادې لره ترمينځې دوچنده دى، اوپه سفردې بيايې له ځان سره کومه چې يې خوښه وي اوقرعه اندازي کول ښه ده، اوښځې لره رجوع کول جائزده که دې هبه کړي وي خپل نوبت بلې ښځې ته.

**تشريح:** (۱۵۶) که ديوکس دوه ياله دوو څخه زياتې ښځې وي نوپرخاوند دوئ په منځ کې په شپه تيرولو، ملبوساتو، او مأکولاتو کې برابري کول لازم دي اوباکره دثيبې په شان ده يعنى په دواړو کې هيڅ فرق نشته همدا ډول په نوي ښځه او پخوانۍ کې هيڅ فرق نشته، همدا راز په مسلمانه اوکتابيه ښځه کې فرق نشته (لقوله ﷺ من كانت له امرأتان فمال الى احداهما جاء يوم القيامة وشقه مائل) (يعنى دچاچې دوي ښځې وي اوهغه په قسم کې ديوي طرف ته مائل شونودقيامت په ورځ به په داسې حال کې راځي چې دهغه يوطرف به مائل وي). په

دي حديث کې دبرابري نه کونکولپاره وعيديان شوی دی لهذابرابري کول لازم دی ، اوحديث شريف ځکه چې مطلق دی په دي کې دباکري وغيره هيڅ فرق نشته لهذاپه ټولوکې برابري کول لازمي ده ،همدارازپه دي وجه هم چې قسم دنکاح له حقوقوڅخه دی اوپه دي حق نکاح کې دمذکوره ښځوپه منځ کې هيڅ فرق نشته لهذاپه ټولوکې برابري کول لازمي ده .

(۱۵۷)که دچاپه نکاح کې يوه ازاده ښځه وي اويوه مينځه وي نوازادي ښځې لره به دوه دريمې وي اومينځې لره به يوه دريمه وي يعنی له ازادي ښځې سره به دوه شپې تيروي اوله مينځې سره به يوه شپه تيروي ولی چې په همدي سره اثروارد شوی دی عن عبادة بن عبدالله الاسدی ﷺ قال اذا نكحت الحرة على الامة فلهذه الثلثان ولهذه الثلث﴾(يعنی که مينځه په نکاح کې وي اوله حرې سره نکاح وکړي نودحرې لپاره به دوه ثلثه وي اودمينځې لپاره به يوثلث وي ).

(۱۵۸)که دکوم کس متعددي ښځې وي نودسفرپه حالت کې دوئ لره دنوبت هيڅ حق نشته خاوندکه کومه يوه له ځان سره په سفربيول خوښه کړي هغه بيولی شي ولی چې خاوندلره خوداختياردی چې په دوئ کې يوه هم له ځان سره په سفرنه بوځې نوده لره دااختيارهم شته چې له دوئ څخه کومه يوه وغواړي له ځان سر بيولی شي .مګربهتره داده چې ددوئ دتطييب خاطرلپاره ددوئ په منځ کې قرعه اندازي وکړي دکومې يوې نوم چې په قرعه کې راووځې هغه دي له ځان سره بوځې ،اودامده به په دي باندي نه حسابل کيږي .

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزدپه سفردتللوپه حالت کې په متعددوښځوکې قرعه اندازي کول واجب ده نوکه بلاقرعه اندازي يې يوه له ځان سره بوتله نودامده دسفرپه هغې باندي محسوبه وي دامام شافعی رحمه الله دليل دادی چې له حضرت عائشه رضي الله عنها څخه مروی ده ﴿كان النبی ﷺ إذا أراد سفرا أقرع بين نسائه وأيتهن خرجت قرعتها خرج بها معه﴾ (يعنی نبی کريم ﷺ چې به کله دسفراراده فرمايله نوپه خپلوبيبيانوکې به يې قرعه اندازي کوله نوله دوئ څخه به چې دکومې يوې نوم راوتی هغه به يې په سفربيوله )،احناف ځواب ورکوي چې دنبی کريم ﷺ داعمل په استحباب باندي محمول دی ولی چې قسم خوپه نبی کريم ﷺ په حضرکې هم واجب نه وو لقوله تعالی ﴿ترجي من تشاء منهن وتؤوي إليك من تشاء﴾(يعنی په دوئ کې چې ته ﷺ کومه وغواړي له ځان څخه يې ليري کړه اوکومه چې وغواړي ځان ته يې نژدي کړه )له دي ايت څخه معلوميږي چې پرنبی کريم ﷺ قسم لازم نه وو ،همدراز په سفرکې په خاوندپه نوبت لازمولوکې حرج هم دی ولی چې له ځينوښځوسره دکثرت اولادوغيره په وجه سره سفرکول مشکل وي .

(۱۵۹)که له منکوحاتوڅخه کومې يوې خپل نوبت خپلې بنې ته په پريښودلوراضي شوه نوداجائزده ولی چې حضرت سوده بنت زمعة رضي الله عنها له نبی کريم ﷺ څخه درخواست کړی وو چې ماته طلاق مه راکوه ترڅوزه په حشرکې ستاله بيبيانوڅخه يم نوزه خپل نوبت حضرت عائشه رضي الله عنها ته پريږدم . همدارازقسم ددي حق دی لهذادادخپل حق دساقطولوحق لري ،بيادي لره دااختيارهم دی چې په خپل نوبت کې رجوع وکړي ولی چې دي داسې حق ساقط کړی دی کوم چې تراوسه دي لره نه ده واجب شوی نوددي په

ساقطولوسره ساقط کیږي هم نه ولی چې داسقاط تحقق په هغه کې وي کوم چې له وړاندي څخه ثابت اوقائم وي.

## كِتَابُ الرَّضَاعِ

### داکتاب درضاع داحکامو په بیان کې دی

رضاع بفتح الرأ وکسرالرأ دواړه قسمه مستعمل دی لیکن اصل بفتح الرأ دی په کسرالرأ سره هم یولغت دی .په لغت کې رضاع له تي څخه شیدي رودلوته ویل کیږي اوشرعاًدښځې له تي څخه په مخصوص وخت کې شیدي رودلوته ویل کیږي.له وخت مخصوص څخه مراددرضاعت مده ده دکوم په باره کې چې دائمه واختلاف دی تفصیل مخکې راروان دی ان شاءالله تعالی .

دکتاب الرضاع له ماقبل سره مناسبت دادی چې له نکاح څخه اصل مقصودتوالداوتناسل دی محض تکمیل شهوت نه دی اودولدلپاره رضاع ضروري ده ابتداء دولدبقاء عادة له رضاعت څخه بغیرممکن نه ده ځکه نوله نکاح څخه وروسته درضاعت بیان مناسب وګڼل شو.

(۱)هو مَصُّ الرَّضِيعِ مِن ثَدْيِ الآدَمِيَّةِ فِي وَقْتٍ مَخْصُوصٍ (۲)وَحَرُمَ بِهِ وَإِنْ قَلَّ (۳)فِي ثَلاثِينَ شَهْرًا مَا حَرُمَ بِالنَّسَبِ (۴)إِلَّا أُمَّ أَخِيهِ (۵)وَأُخْتَ ابْنِهِ

**ترجمه** :هغه رودل دي دشیدي خوړونکی بچی دکومې ښځې له تیانو څخه په یومخصوص وخت کې،اوحرامیږي ددي په وجه سره که څه هم لږوي ،په دیرشو میاشتو کې هغه ټول قرابتونه کوم چې حرام دي دنسب په وجه سره ،مګردرضاعی وروړمور،اودرضاعی زوی خور.

**تشریح** :(۱)مصنف رحمه الله درضاعت شرعی تعریف کړی دی چې دشیدوخوړونکی بچی په مخصوص وخت کې دکومې ښځې له تی څخه شیدي رودلوته رضاع ویل کیږي .دادمیه (یعنی دښځې له تی څخه درودلو)دقیدپه لګولوسره یې احترازوکړدحیوان له تی دشیدوررودلوڅخه چنانچه که دوکوچنیانوداوي وغیره شیدي ورودلې نوپه دي سره ددواړوپه منځ کې رضاعت نه ثابتیږي .

(۲)یعنی درضاعت په وجه سره هغه ټولې ښځې حرامیږي کومې چې دنسب په وجه حرامې دی لقوله ﷺ ﴿ يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ﴾(یعنی حرامیږي په رضاعت سره کومې چې حرامیږي په نسب سره)،البته دوه صورتونه له دي څخه مستثنی دي دکوموتفصیل چې به مخکې ذکرکړای شي . بیا داحنافوپه نزدکه بچی لږشیدي وخوروي اوکه ډیري په دي سره حرمت ثابتیږي ولی چې ارشادباری تعالی دی﴿ وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ الخ ﴾یعنی (حرام کړل شوي دي په تاسې هغه مندي کوموچې تاسې ته شیدي درکړي دي)ولقوله ﷺ ﴿ يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ ﴾(یعنی حرامیږي په رضاعت سره کومې چې حرامیږي په نسب سره )،په مذکوره بالانصوصوکې درضاعت قلیل اوکثیرترمنځ هیڅ فرق نه دی بیان شوی لهذاپه قلیل اوکثیردواړوسره تحریم ثابتیږي .

ف:حال داچې دامام شافعی رحمه الله په نزدپه پنځه ځله شیدوخوړلوسره حرمت ثابتیږي له دي څخه په لږونه ثابتیږي لقوله ﷺ ﴿لَا تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ وَالْمَصَّتَانِ وَلَا تُحَرِّمُ الْإِمْلَاجَةُ وَالْإِمْلَاجَتَانِ ﴾(یعنی په یوه دوه ځله رودلویاپه یودوه ځله

شیدو ورکولو سره حرمت نه ثابتیږي )،امام شافعي رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې کوم حدیث چې تا په استدلال کې وړاندي کړی دی هغه منسوخ دی ولی چې له حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه مروی ده فرمایي چې لا تحرم الرضعة ولا الرضعتان کان فاما الیوم فالرضعة الواحدة تحرم (یعنی دلاتحرم الرضعة والرضعتان والاحکم په کومه زمانه کې وو لیکن نن دا حکم منسوخ دی نن په یو ځل شیدو ورکولو سره هم حرمت ثابتیږي )همدا تفصیل له حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه هم مروی دی.

(۳)البته شرط دادی چې رضاعت به درضاعت په مده کې وي اومدت رضاعت دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دیرش میاشتې دی .دصاحبینو په نزد دوه کاله دی .دصاحبینو دلیل دالله تعالی دارشاد دی ﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا﴾(یعنی دبچی حمل اوفصال دیرش میاشتې دی )نو الله تعالی دحمل اوله شیدو څخه دپرې کولو مده دیرش میاشتې بیان کړي ده اودحمل ادنی مده شپږ میاشتې ده لهذا مدت فصال دوه کاله پاتې شو .دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل هم همدا ایت مبارک دی وجه دا استدلال داده چې الله تعالی دوه شیان(حمل او فصال) ذکر کړی دی اوددواړو لپاره یې یو مدت بیان کړي دی نو دا مدت به له دواړو څخه دهریوه لپاره پوره پوره وي نه داچې پردواړوبه تقسیمیږي ددي مثال داسې دی لکه چې دیو کس پرزید اوبکر باندي قرض وي قرض خواه دواړو ته وویل چې ماتاسې ته یو کال مهلت درکړی دی نو دا یو کال مهلت به له دواړو څخه دهریوه لپاره پوره پوره وي نه داچې په دواړوبه په تقسیمولو سره هریوه لره شپږ میاشتې مدت شمارل کیږي.، البته دحمل دمدي کمونکی دلیل موجود دی اودفصال په کمیدلو څه دلیل نشته لهذا هغه پرخپل ظاهر دی ،دحمل دمدي کمونکی دلیل دحضرت عائشه رضي الله عنها قول دی (الولد لایبقی فی بطن امه اکثر من سنتین ) (بچی دخپل مور په نس کې له دووکالو څخه زیات نشي اوسیدلی )، ظاهره ده چې داشان مضمون له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه په اوریدلو معلومیدای شي لهذا همدا به ویل کیږي چې حضرت عائشې رضي الله عنها دامضمون له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلی دی ځکه دحضرت عائشه رضي الله عنها داقول دمرفوع حدیث په درجه کې دی.

ف:دصاحبینو قول راجح دی کمافی الشامیة:(قوله والاصح ان العبرة لقوة الدلیل )قال فی البحر ولایخفی قوة دلیلهما فان قوله تعالی والوالدات یرضعن الایة یدل علی انه لارضاع بعد التمام واما قوله تعالی فان ارادا فصالا عن تراض منهما فانما هو قبل الحولین بدلیل تقییده بالتراضي والتشاور وبعدهما لایحتاج الیهما واما استدلال صاحب الهدایة للامام بقوله تعالی وحمله وفصاله ثلاثون شهرا بناء علی ان المدة لکل منهما کما مر فقد رجع الی الحق فی باب ثبوت النسب من ان الثلاثین لهما للحمل ستة اشهر والعامان للفصال (ردالمحتار:۲/۲۳۸)

ف:له مدت رضاعت (علی اختلاف القولین )تیریدلو څخه وروسته که بچی ته شیدي ورکول شوي نو له دي سره تحریم تعلق نه نیسي یعنی حرمت رضاعت نه ثابتیږي لقوله صلی الله علیه وسلم ﴿ لارضاع بعد فصال﴾له تې پرې کیدلو څخه وروسته رضاعت نشته.

(۴)لوړچې کوم دوه صورتونه مستثنی شوي دي په هغوئ کې یو صورت دادی چې درضاعی خور،وروړله مورسره نکاح کول جائزده ددي صورت به داسې وي چې زید اوساجدی دیوې پردی ښځې شیدي وخوړلې مگرزید دساجدی دنسبی مور شیدي نه دي خوړلې نوزیدلره دده رضعی خورساجدی نسبي مورحلاله ده ،مگردنسبي خور،وروړله نسبي مورسره نکاح جائزه نه ده ولی چې دنسبي خور وروړنسبي

مورخوبه یادده هم موروي که دوارہ حقیقي وروراوخوروي اویابه دده دپلارموطؤه وي که ددوارو پلار یو او مورانې سره جلاجلاوي ،له دي دوارو (مور،اودپلارمؤطوه )سره نکاح جائزه نه ده .

(۵)داستثناء دوهم صورت دادی چې درضاعي زوی له نسبي خورسره نکاح جائزده مثلازیدد بکردښځې شیدي وخوړلې نودزیدله نسبي خورسره دبکرنکاح جائزده مگردنسبي زوی له نسبي خورسره نکاح جائزنه ده ولی چې دنسبي زوی نسبي خورکه دده له نطفې څخه وي نو هغه دده لورده اوکه دده له نطفې څخه نه وي اودده دزوی صرف په مورشریکه خوروي اوله دي دوارو (لوراوربیبه که یې ددي په مورد خول کړې وي )سره نکاح جائزنه ده .

ف :له مستثنائې دووصورتونو څخه علاوه نورصورتونه هم شته ،نمبر۱.دنسبي خورله رضاعي مورسره نکاح کول جائزده مثلادزیدحقیقې خورته کومې پردی ښځې شیدي ورکړي نودزیدله دي پردی ښځې سره نکاح کول جائزده .نمبر۲. درضاعي خورله رضاعي مورسره نکاح کول جائزده مثلاحمیدی ددوو ښځوشیدي وخوړلې ، زید هم له دي دوارو څخه دیوې شیدي وخوړلې نوپه دي دوارو کې له هغه بلې ښځې (دکومې چې زیدشیدي نه دي خوړلې )سره دزیدنکاح کول جائزده .نمبر۳. دنسبي زوی له رضاعي خورسره نکاح کول جائزده مثلا دزیدزوی بکردی،بکراوحمیدي دکومې اجنبي ښځې شیدي وخوړلې نوزیدلره دخپل نسبي زوی بکرله رضاعي خور حمیدی سره نکاح کول جائزده .نمبر۴. دنسبي لمسی له رضاعي مورسره مثلادزیدزوی محموددی اود محمود زوی خالددی اوخالدته کومې اجنبي ښځې کریمې شیدي ورکړي نوزیدته له کریمې سره نکاح کول جائز ده . نمبر۵ درضاعي لمسي له نسبي مورسره مثلادزیدزوی محموددی اود محمودزوجې بکرته شیدي ورکړي نو بکردزیدرضاعي لمسی شونوزیدته دبکرله نسبي مورسره نکاح کول جائزد.نمبر۶ . درضاعي لمسی له رضاعي مورسره مثلابکرته دمحمودله زوجې څخه ماسواحلیمې شیدي ورکړي نوزیدلره حلیمه حلاله ده .نمبر۷ . دنسبي زوی له رضاعي اناسره مثلادزیدزوی عبدالله ته حمیدي شیدي ورکړي نودحمیدي موركومه چې دعبدالله رضاعي اناشوه زیدته حلاله ده .له دي څخه ماسوانورهم ډیرصورتونه دي دکوموتفصیل چې په معدن کې کتلای شي .

(۶)زَوْجُ مُرْضِعَةٍ لَبَنُهَا مِنْهُ أَبٌ لِلرَّضِيعِ وَابْنُهُ أَخٌ وَبِنْتُهُ أُخْتٌ وَأَخُوهُ عَمٌّ وَأُخْتُهُ عَمَّةٌ (۷) وَتَحِلُّ أُخْتُ أَخِيهِ رَضَاعًا وَنَسَبًا

**ترجمه** :اودشیدي ورکونکې ښځې هغه خاوندله کوم څخه چې ددي شیدي دي پلاردی دشیدي خوړنکي لپاره او دهغې زوی وروزدی اودهغې لورخورده اودهغه وروراکادی اودهغه خورعمه ده ، اوحلاله ده دورور رضاعي اونسبي خور.

**تشریح** :(۶)دشیدي ورکونکې ښځې خاوندله کوم څخه چې دمرضِعه (شیدي ورکونکې ښځې)شیدي پیدا شوي دی دمرضَعه (کومې ته چې شیدي ورکول شوي دی)پلارجوړیږي په دي سره احتراز دی له هغه خاوندڅخه چې له هغه دښځې شیدي نه وي پیداشوي مثلاچاله کومې داسې ښځې سره نکاح وکړه چې دهغې له سابقه خاوندڅخه شیدي پیداشوي دی اوس دي ښځې کوم بچی ته شیدي ورکړي نوددي بچی رضاعي پلاربه دښځې اوسنی خاوندنه وي بلکه سابقه خاوندبه وي ،همداشان دده (یعنی دزوج المرضِعه

)زوی ددي وروردی اودده لوردمرضَعه خورده اودده وروردمرضَعه اکا دی اودده خور دمرضَعه عمه ده لهذادمرضعه له دي متعلقينو څخه له يوسره هم دمرضَعه نکاح صحيح نه ده .

(۷)اودخپل رضاعي وروراونسبي وروړله خورسره نکاح صيح کيدای شي مثلاً دزيددوه ييبيانې کلثوم اوسليمه دي اودداړودوه زامن دی داولي بکراوددوهمې خالددی اودکلثوم له سابقه خاوند څخه يولورزينب هم شته نوداززينب دسليمه دزوی خالدلپاره حلاله ده ولی چې ددوئ دواړوپه منځ کې هيڅ قرابت نشته ،اودامثال دداړوصورتونودپاره مثال کيدای شي څکه چې دکلثوم زوی که ددي حقيقي زوی وي نوداانجلی دخالدنسبي وروخورده اوکه رضاعي زوی وي نو هغه دضاعي ورور خورده .

(۸)وَلَاحِلَّ بين رَضِيعَي ثَدْيٍ(۹)وَبَيْنَ مُرْضِعَةٍ وَوَلَدِ مُرْضِعَتِهَا وَوَلَدِ وَلَدِهَا(۱۰)وَاللَّبَنُ الْمَخْلُوطُ بِالطَّعَامِ لَايُحَرِّمُ(۱۱)وَيُعْتَبَرُ الْغَالِبُ لَوْبِمَاءٍ وَدَوَاءٍ(۱۲)وَلَبَنِ شَاةٍ(۱۳)وَامْرَأَةٍ أُخْرَى

**ترجمه** :اوحلت نشته له يوه تی څخه دشيدورودنکوپه منځ کې ، اودشيدي رودونکی اودشيدو ورکونکې دزوی اوددي دلمسی په منځ کې ،اوداسې شيدي چې له خورک سره يوځای شوي وي حرمت نه پيداکوي ،اواعتباربه کيږي دغالب که شيدي له اوبو ،يادواء يادا وي يادبلې ښځې له شيدونسره مخلوطې وي .

**تشريح** :(۸)هرهغه دوه ماشومان چې ديوې ښځې پرتيانو سره يوځای شي يعنی دواړه ديوې ښځې شيدي درضاعت په مده کې وخوري که څه هم دداړودرضاعت زمانه سره يوه هم نه وي نوپه دوئ دواړوکې ديوه لپاره له هغه بل سره نکاح کول حلال نه دی ولی چې دوئ په خپل منځ کې سره خوراو وروردي .

(۹)اومرضَعه (چاته چې شيدي ورکول شوي دي )دمرضِعه (شيدي ورکونکې )له زامنوڅخه له يوه سره هم نکاح نشې کولی که څه هم دمرضِعه زامنودمرضِعې شيدي نه وي خوړلې ولی چې دمرضِعه زامن په هرحال ددي رضاعي وروڼه دي .

(۱۰)که شيدي په خوراک کې ګډې شوي نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپه دي سره حرمت رضاعت نه ثابتيږي که څه هم شيدي غالبې وي ولی چې مقصوديعنی په غذاحاصلولوکې خورک اصل دی اوشيدي دهغه تابع دي لهذاپه حصول مقصوديعنی غذاحاصلولوکې شيدي مغلوبې شوي که څه هم په حقيقت کې غالبې وي څکه نوله دي سره تحريم تعلق نه نيسي .

**ف**:دصاحبينوپه نزدکه شيدي غالبې وي نوله دي سره تحريم تعلق نيولی شي ولی اعتباردغالب دی ، همدارازداختلاف په هغوشيدوکې دی کومې چې په اورنه وي پخې شوي کنه نو بالاتفاق حرمت نه ثابتيږي په مختلف فيه مسئله کې دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الشامية :(قوله مطلقا)ای سواء کان غالباً او مغلوباً عندالامام..............عن مجمع الانهر عن الخانية ان قول انه لاتثبت الحرمة بکل حال واليه مال السرخسي وهو الصحيح کمافی اکثرالکتب(ردالمحتار :۲/۳۴۴)

(۱۱)که شيدي په اوبوکې ګډي شوي اوشيدي غالبې وي اوبه مغلوبې وي بياکوم ماشوم داوڅښلې نوپه دي سره حرمت رضاعت ثابتيږي ولی چې دشيدودغالب والی په وجه په شيدوسره دماشوم په غوښواوهډوکوکې اضافه والی راځي اوپه باب درضاعت کې همدامعتبردی ،قال ﷺ ﴿الرضاع ماانبت اللحم وانشرالعظم﴾،اوکه اوبه غالبې وي اوشيدي مغلوبې وي نوپه دي سره حرمت رضاعت نه ثابتيږي ولی چې

مغلوب حکماغیر موجود شمارل کیږي نو کویاده شیدي نه دي خوړلې. همداشان که شیدي له دواء سره ګډې شوي اوشیدي غالبې وي نوپه دي سره حرمت رضاعت ثابتیږي ولی چې په غذا حاصلولو کې شیدي مقصوددي ولی چې دشیدو غالب والی دلیل دی چې دواء صرف دتقویت لپاره ورګډه شوي ده.

(۱۲) قوله ولبن شاة ای یعتبر الغالب لو کان الاختلاط بلبن شاة، یعنی که دبنځې شیدي داوي له شیدو سره ګډې شوي اودبنځې شیدي غالبې وي نوپه دي سره حرمت ثابتیږي اوکه داوي شیدي غالبې وي نوپه دي سره حرمت نه ثابتیږي دغالب په اعتبار کولو سره کمافی الماء.

(۱۳) قوله وامرأة اخری ای یعتبر الغالب لو کان الاختلاط بلبن امرأة اخری، یعنی که ددوو بنځو شیدي مخلوطې شوي بیا کوم ماشوم هغه وڅښلې نو امام ابویوسف رحمه الله فرمایې چې دکومې یوې شیدي غالبې وي دهغې حرمت ثابتیږي ولی چې ددواړو بنځو شیدي په یوځای کیدلو سره یو شئ جوړ شو نو په دي سره درضاعت دحکم په بناء کولو کې اقل داکثر تابع جوړ شوی دی.

ف: امام محمد او امام زفر فرمایې چې له دواړو سره تحریم تعلق نیسي ځکه چې شی په خپل جنس باندي نشي غالب کیدای په دي وجه چې شی له خپل جنس سره داتحاد مقصود په وجه نه مستهلک کیږي نو شی له خپل جنس سره په یوځای کیدلو معدوم نه ګرځي نو په دوئ کې یو هم دهغه بل تابع نه دی، له امام ابوحنیفه رحمه الله څخه په دي باره کې دوه روایته منقول دي په یوه روایت کې له امام ابویوسف سره دی اوپه بل روایت کې له امام محمد او امام زفر سره دی.

ف: دامام محمد رحمه الله قول راجح دی کمافی الشامیة: (قوله قیل وهو الاصح) قال فی البحر وهو روایة عن ابی حنیفة قال فی الغایة وهو اظهر واحوط وفی شرح المجمع قیل انه الاصح اه وفی الشرنبلالیة ورجح بعض المشائخ قول محمد والیه مال صاحب الهدایة لتاخر دلیل محمد کمافی الفتح. (ردالمحتار: ۲/۴۴۳)

(۱۴) وَلَبَنُ الْبِكْرِ (۱۵) وَالْمَيِّتَةِ مُحَرِّمٌ (۱۶) لَا الِاحْتِقَانُ (۱۷) وَلَبَنُ الرَّجُلِ (۱۸) وَالشَّاةِ

**ترجمه**: او دباکره بنځې شیدي او مړي بنځې شیدي حراموي، نه حقنه کول، او دنارینه شیدي، او دبزې شیدي.

**تشریح**: (۱۴) که دباکره بنځې له تیانو څخه شیدي راغلې بیا دي هغه شیدي کوم ماشوم ته ورکړې نو په دي شیدو سره حرمت رضاعت ثابتیږي ولی چې دحرمت رضاعت په باره کې نص مطلق دی په کوم کې چې دباکره او ثیبه ترمنځ هیڅ فرق نشته.

(۱۵) که دبنځې له وفات کیدلو څخه وروسته ددي شیدي ولوښل شوي بیا داشیدي دکوم ماشوم په خوله کې واچول شوي نو په دي سره حرمت رضاعت ثابتیږي ولی چې شیدي له مرګ څخه وروسته داسې دي لکه له مرګ څخه وړاندي ځکه دحرمت سبب دشیدو دڅښلو په وجه دجزئیت شبه ده او داشبه دفوت شوي بنځې دشیدو دڅښلو په صورت کې هم پیداکیږي لهذا دفوت شوي بنځې دشیدو په څښلو سره هم حرمت ثابتیږي.

ف: دامام شافعی رحمه الله په نزد په مذکوره بالاصورت کې حرمت نه ثابتیږي ولی چې دحرمت په ثبوت کې اصل بنځه ده یعنی لومړی په مرضِعه بنځه او مرضَع ماشوم کې حرمت ثابتیږي بیا له دي څخه غیر ته متعدي

کیږي لیکن څرنګه چې ښځه دمرګ په وجه دحرمت محل نه شوه پاتې لهذادغیرطرف ته به هم حرمت نه متعدي کیږي .امام شافعي ﷫ ته ځواب ورکړل شوی دی چې داویل چې دابنځه اوس محل دحرمت نه ده صحیح نه دي ولې چې که ددې ښځې شیدې کوم ذی خاوندبچې ته ته وروڅښل شوي نوددې بچی خاونددې ښځې زوم کیږي اوددې ښځې محرم ګرځي نوکه ددې ښځې کوم بل قریب نه وي اودتیمم ورکولوضرورت وي نوددې بچی خاونددې ته تیمم ورکولی شي اوښخولی شي ولې چې دابنځه اوس دده رضاعي خوابنې ده .

(۱۶)قوله لاالاحتقان ای لایحرم الاحتقان باللبن ،یعنې که دکوم ماشوم نس ته دحقنې په ذریعه سره دکومې ښځې شیدې ورسول شوي نوپه دې حرمت رضاعت نه ثابتیږي حال داچې دامام محمد ﷫ په نزدپه دې سره هم حرمت رضاعت ثابتیږي ولې چې په حقنه سره روژه فاسدیږي نوحرمت رضاعت هم ثابتیږي ،دظاهرالروایة دلیل دادی چې حرمت په داسې شیدوسره ثابتیږي کومې چې غذاجوړي شي حال داچې دحقنې په ذریعه سره رسیدلې شیدې غذانه ده ولې چې غذاله لورطرف څخه وي نه دکښته له طرف څخه ،باقي روژه ځکه فاسدیږي چې دروژې لپاره مفسددکوم شي جوف ته رسیدل دي اودادحقنې په صورت کې متحقق کیږي لهذاپه حقنه روژه فاسدیږي .

(۱۷)قوله ولبن الرجل ای لایحرم ایضالبن الرجل ،یعنې که دنارینه له تی څخه شیدې راووتې اوده هغه شیدې کوم ماشوم ته وروڅښلې نوپه دې سره حرمت رضاعت نه ثابتیږي ولې چې دنارینه شیدې په حقیقت کې شیدې نه دي ولې چې شیدې له هغه شخص څخه متصوري وي له کوم څخه چې ولادت متصوروي اوڅرنګه چې له نارینه څخه ولادت متصورنه دی په دې وجه له ده څخه شیدې هم متصوري نه دي .

(۱۸)قوله والشاة ای لایحرم لبن شاة ،یعنې که دوه ماشومانودیوې بزې شیدې وخوړي نوددوئ په منځ کې حرمت رضاعت نه ثابتیږي ولې چې دڅارویوشیدې دخوړک حکم لري .داوې دشیدوهیڅ حرمت نشته همداوجه ده چې داوې دشیدوپه خوړلوسره اوي لره ام والی نه ثابتیږي ،اوداوې دبچی اودمرضع په منځ کې دوروګلوي نه ثابتیږي ،بلکه دحرمت رضاعت حکم بطورکرامت صرف له انساني شیدوخوړلوسره خاص دی

(۱۹)وَلَوْ أَرْضَعَتْ ضَرَّتَهَا حَرُمَتَا (۲۰)وَلَا مَهْرَ لِلْكَبِيرَةِ إِنْ لَمْ يَطَأْهَا وَلِلصَّغِيرَةِ نِصْفُهُ (۲۱)وَيَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْكَبِيرَةِ إِنْ تَعَمَّدَتْ الْفَسَادَ وَإِلَّا فَلَا(۲۲)وَيَثْبُتُ بِمَا يَثْبُتُ بِهِ الْمَالُ

**توجمه** :که شیدې ورکړې ښځې خپلې بنې ته نودواړه حرامیږي ،امهرنشته لویې لره که له دې سره وطی نه وه شوې اوکوچنی لره نصف مهردی ،اورجوع به کوي ددې په باره کې په لویې باندې که دقصد کړی وو دفسادنکاح که نه نو نه به کوي ،اوشیدې خوړل ثابتیږي په هغه سره په کوم چې مال ثابتیږي .

**تشریح** :(۱۹)که چاله یوې لویې ښځې اوله یوې کوچنی شیدې خورونکې ماشومې سره نکاح وکړه بیالوېږه ښځې کوچنی ته کومه چې دکبیرې بنه ده خپلې شیدې ورکړې نوپه خاوند دواړه حرامیږي ولې چې په شیدوورکولوسره کبیره دصغیرې رضاعي مورشوه نوخاوندموراولورلره په نکاح کې جمع کونکی شواومور اولورپه نکاح کې جمع کول حرام دي.

(۲۰)بياكه خاوندپه كبيره دخول نه وو كړی نوپرخاوندكبيرې لره مهرواجب نه دی ولی چې دكبيرې چې صغيرې ته دشيدوركولوپه وجه دخاونداوكبيرې ترمنځ كوم فرقت راغلی دی دافرقت قبل الدخول دكبيرې له جانبه راغلی دی اوقبل الدخول دښځې له طرفه فرقت نصف مهرساقطوي لكه څرنګه چې په قبل الدخول مرتده كيدلوسره نصف مهر ساقطيږي ،اوصغيرې لره به نصف مهروي ولی چې فرقت دصغيرې له طرفه نه دی واقع شوی اودقبل الدخول فرقت په وجه دې لره نصف مهرواجب دی .

ف:ليكن كه كبيرې قصداشيدې نه وي وركړي بلكه چادامجبوره كړي وه يادخوب په حالت كې ماشومې ددې شيدې خوړلی وي ياچاددې شيدې لوښلې وي اوماشومې ته يې وركړي وي نوپه دې صورتونوكې څرنګه چې فرقت دښځې له طرفه نه ده راغلی لهذادې ته به نصف مهروركول كيږي . همداشان كه خاوندله دې سره وطی كړې وي نودادكل مهر مستحقه ده ولی چې دوطی په وجه كل مهرمستحكم شوی دی .

ف:امام مالك رحمه الله فرمايي چې صغيرې ته به هم نصف مهرنه وي ولی چې فرقت دصغيرې له طرفه راغل دی ځكه چې دشيدوخوړولوصدورپه خپله له صغيرې څخه شوی دی ،امام مالك رحمه الله ته ځواب وركړل شوی دی چې سقوط مهردجزاء په ډول دی اوصغيره دنه مكلفيت په وجه سر دجزاء مستحقه نه ده .

(۲۱)خاوندلره داختيارشته چې صغيرې ته وركړل شوی مهرله كبيرې څخه واخلې كه كبيرې په شيدوركولوسره دفساد نكاح اراده كړې وه مثلاداورمعلومه وه چې داانجلۍ ددې بن ده اوپه شيدو وركولوسره نكاح ختميږي اودشيدوركولو ضرورت هم نه وو بياهم دې شيدې وركړي نوكبيره به دصغيرې دنصف مهرضامنه وي ولی چې دصغيرې نصف مهرعلی شرف السقوط وو ځكه چې ممكنه وه چې له بلوغ څخه وروسته دې دامرتده شوی وای دكوم په وجه چې مهربالكليه ساقطيدلوليكن كبيرې په شيدوركولوسره نصف مهرمؤكدكړاودمهرداتاكيددضمان واجبولوپه حق كې داتلاف قائم مقام دی ګوياكبيرې صغيرې ته په شيدوركولوسره دخاوندنصف مهرتلف كړلهذاكبيرې له طرفه دتعدی په وجه خاوند لره دنصف مهرپه باره كې په كبيره درجوع كولوحق حاصل دی .قوله والالا ای وان لم تتعمدالفساد ،يعنی كه كبيرې دفسادنكاح اراده نه وه كړې بلكه دلوږې اوهلاكت دليرې كولواراده يې وه نوپه دې صورت كې خاوندلره دنصف مهرپه باره كې په كبيرې درجوع حق نشته ولی چې دكبيرې له طرف څخه تعدی نشته .

ف:دامام شافعی اوامام محمدرحمهماالله تعالی په نزدكه كبيرې دفسادنكاح اراده كړې وي اوكه يې نه وي كړې په دواړوصورتونوكې به خاونددنصف مهرپه باره كې رجوع كوي ولی چې كبيره په فسادنكاح كې متسببه ده اوقاعده ده چې په وجوب ضمان كې متسبب دمباشرپه شان دی .احناف ځواب وركوي چې متسبب دتعدی په وخت كې دمباشرپه حكم كې دی بلاتعدی دمباشرپه حكم كې نه دی لهذابلاتعدی به كبيره ضامنه نه وي .

(۲۲)قوله ويثبت بمايثبت به المال ای يثبت الرضاع بمايثبت به المال ،يعنی په اثبات رضاعت سره څرنګه چې نكاح باطليږي كوم چې ابطال ملك دی اوابطال ملك په هغه ثابتيږي په كوم چې مال ثابتيږي اومال

ددوعادل یامستوروناریښه وپه ګواهی سره یادیوه ناریښه اودووښځوپه ګواهی سره ثابتیږي صرف دښځوپه ګواهی سره نه ثابتیږي لهذارضاعت به هم ددووعادل یامستورناریښه وپه ګواهی یادیوه ناریښه اودووښځوپه ګواهی سره ثابتیږي .باقی درضاعت دثابتولولپاره به صرف دښځوګواهی نه قبلیږي ولی چې رضاعت داسې شئ دی په کوم چې ناریښه هم خبریدئ شي اوصرف دښځو ګواهی دهغوشیانوپه باره کې معتبره ده په کوموچې ناریښه نشي خبریدلی .

ف:دامام شافعی رحمه الله په نزدد څلورښځوپه ګواهی سره رضاعت ثابتیږي ،دامام مالک رحمه الله په نزددیوې عادلې ښځې په ګواهی سره رضاعت ثابتیږي .دامام احمد رحمه الله په نزدصرف دمرضعه په ګواهی سره رضاعت ثابتیږي .

## كِتَابُ الطَّلَاقِ

داکتاب دطلاق په بیان کې دی

طلاق په لغت کې رفع دقیدته ویل کیږي .اوپه شریعت کې دقیدنکاح فی الحال یافی المآل په الفاظ مخصوصه سره رفع کولوته ویل کیږي ،دطلاق سبب دضرورت په وخت کې له قیدنکاح څخه خلاصوالی دی مثلازوجین په متضاداخلاقوسره متصف وي.

طلاق په اسلام کې یوډیرناخوښه عمل دی نبی کریم ﷺ فرمایلي دي الله تعالی چې دکومو شیانو اجازت درکړی دی په هغوکې یوشی هم له طلاق څخه ډیرناخوښه نه دی .له حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه څخه مروی ده چې نبی کریم ﷺ دبلاوجه طلاق ورکونکودبدوالی په بیانولوسره وفرمایل چې ښځوته دي هغه وخت طلاق ورکول شي کله چې ددوئ کردارپه اخلاقي اعتبارسره مشکوک وي ولی چې الله تعالی هغه ناریښه اوښځې نه خوښوي کوم چې محض خوندونه څکې .

دطلاق لپاره شرط دادی چې طلاق ورکونکی به عاقل بالغ وي اوښځه به په نکاح کې وي یابه په داسې عدت کې وي دکوم په وجه چې دادطلاق دمحل والی صلاحیت لري ،اودطلاق حکم زوال الملک عن المحل دی .

کتاب الطلاق له کتاب الرضاع څخه وروسته دذکرکولووجه داده چې طلاق اورضاع دواړه موجب حرمت دي مګرپه رضاعت حرمت ابدی ثابتیږي اوپه طلاق غیرابدی نوداهتمام شان په وجه حکم اشدمقدم کړای شواواخف مؤخرکړای شو .

(۱)هو رَفعُ القَيدِ الثّابِتِ شَرعاً بِالنِّكاحِ (۲) طَلِيقُهَا وَاحِدةً في طُهرٍ لَا وَطْءَ فيهِ وَتَركُهَا حتى تَنقَضِيَ عِدَّتُهَا أحسَنُ (۳) وَثَلاثاً في أطهَارٍ حَسَنٌ وَسُنِّيٌّ (۴) وَثَلاثاً في طُهرٍ أو بِكَلِمَةٍ بِدعِيٌّ

**ترجمه**: هغه هغه قيدلره ليري كول دي كوم چې ثابتيږي شرعاً دنكاح په وجه ،ښځې ته يو طلاق وركول په داسې طهركې چې په هغه كې صحبت نه وي شوى او دا پريښودل ترڅو چې ددي عدت تيرشي طلاق احسن دى ،اودري طلاقه په دريو طهرونو كې وركول حسن او سني دى ،اودري طلاقه په يوه طهركې ياپه يوه كلمه سره بدعى دى.

**تشريح**:(۱)مصنف رحمه الله په خپل دي عبارت كې دطلاق اصطلاحي تعريف بيان كړى دى چې طلاق دهغه قيدپورته كولوته ويل كيږي كوم چې دنكاح په وجه شرعاًثابت شوى دى ،دشرعاًپه قيدسره احتراز وشودقيد حسى له رفع كولو څخه چې هغه قيدشرعى نه دى اودبالنكاح په قيدسره عتق خارج شوچې عتق هم له قيدڅخه خلاصوالى دى مګردعتق قيددنكاح په وجه سره نه ده ثابت شوى بلكه دغلامې په وجه ثابت شوى دى كه ښځه موذى وي ياتارک لمانځه وي نودي ته طلاق وركول مستحب دى اوكه زوج امساک بالمعروف نه شوكولى مثلاًمجبوب ياعينين وو نوبياطلاق وركول واجب دى اوبلاوجه طلاق بدعى وركول حرام دى.

(۲)طلاق پردري قسمه دى ،احسن ،سنت ،بدعت ، طلاق احسن دادى چې سړى خپلې منكوحې ته يو طلاق په داسې طهركې وركړي چې په هغه كې يې له دي سره جماع نه وي كړي اودا پريږدي ترڅو چې ددي عدت تيرشي ،دطلاق احسن په دي وجه دى چې له ابراهيم نخعي رحمه الله څخه مروى ده چې صحابه كرامو رضي الله عنهم په دي ډول طلاق مستحب ګڼي .همداراز يوطلاق واقع كول له ندامت څخه ابعدهم دى ځكه چې خاوندلره دتدارک امكان شته چې دى په عدت كې رجوع كولى شي اوله عدت څخه وروسته بغيرله حلاله تجديدنكاح كولى شي اوله يوه څخه دزيات طلاق وركولوپه صورت كې ښځې لره دشدت وحشت ضررهم دى حال داچې په يوه طلاق كې داوحشت كم دى اوداطلاق احسن په نسبت هغونوردوو طلاقونوته دى دامرادنه دى چې دافى نفسه احسن دى ځكه مروى ده چې طلاق ابغض المباحات دى .

(۳)قوله وثلاثا فى اطهارحسن وسنى اى تطليقها ثلاثا فى ثلاثة اطهارحسن وسنى ،يعنى طلاق حسن اوسنت دادى چې خاوندخپلې منكوحې مدخول بهاته په دري طهرونو كې دري طلاقه وركړي په هرطهركې يو طلاق وركړي ولى چې حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه خپلې ښځې ته طلاق وركړدكوم خبرچې نبى كريم ﷺ ته ورسيدونوئبى كريم ﷺ حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه ته وفرمايل !اى ابن عمردداشان كولوتاته الله تعالى حكم نه دى دركړى تاسنت پريښودل سنت دادى چې ته انتظاروكړي دطهرياپه هرطهركې طلاق وركړي .اودطلاق له سنت والى څخه مراددادى چې پردي به عتاب نه وي دامعنى نه ده چې پردي به ثواب حاصليږي ولى چې طلاق فى نفسه عبادت نه دى نودلته له سنت څخه مرادمباح دى .

(۴)قوله وثلاثا فى طهراوبكلمة بدعى اى تطليقها ثلاثا فى طهراوبكلمة بدعى ،يعنى طلاق بدعت دادى چې خاوندخپلې منكوحې ته په يوه طهركې دوه يادري طلاقه وركړي ياپه يوه كلمه دوه يادري طلاقه واقع كړي ،اوداطلاق بدعت ځكه دى چې په طلاق كې اصل ممانعت دى ولى چې دطلاق په وجه نكاح منقطع كيږي

چې له هغې سره مصالح دينيه او دنيويه تړلې دي مګر كله دكوم عارضي ضرورت په وجه سره له ښځې څخه ځان خلاصول لپاره طلاق مباح ګرځول شوی دی اودامقصود په يوه طلاق سره حاصليږي لهذادري طلاقونو دجمع كولو يا په طهرواحدكې ددري طلاقونو واقع كولو ضرورت نشته ځكه دي طلاق ته بدعت ويل كيږي ،ليكن چاچيلې ښځې ته طلاق بدعت وركړنو طلاق واقع كيږي اودده ښځه بائنه ګرځي ولی چې ممانعت لمعنى فى غيره دی لهذا طلاق بدعى فى نفسه مشروع دی .

(٥) وَغَيْرُ الْمَوْطُوءَةِ تُطَلَّقُ لِلسُّنَّةِ وَلَوْ حَائِضًا (٦) وَفَرَّقَ عَلَى الْأَشْهُرِ فِيمَنْ لَا تَحِيضُ (٧) وَصَحَّ طَلَاقُهُنَّ بَعْدَ الْوَطْءِ (٨) وَطَلَاقُ الْمَوْطُوءَةِ حَائِضًا بِدْعِيٌّ لِيُرَاجِعَهَا وَيُطَلِّقُهَا فِي طُهْرٍ ثَانٍ

**ترجمه** :اوغيرموطوءه ته طلاق سنى وركول كيداى شي كه څه هم هغه حائضه وي ،اوتقسيم دي كړي په مياشتو دهغه ښځې طلاق كومې ته چې حيض نه ورځي ،اوصحيح دی ددي طلاق له وطی څخه وروسته ، اوموطوءه ته طلاق په حالت حيض كې بدعی دی نو دي ته دي رجوع وكړي اوطلاق دي وركړي په بل طهركې

**تشريح** :(٥)سنت في الطلاق پردوه قسمه دی .(١)سنت فى الوقت .(٢)سنت فى العدد .سنت فى الوقت دادی چې خاوندښځې ته په داسې طهركې طلاق وركړي كوم چې له جماع څخه خالي وي . اوسنت فى العدددادی چې دطهرپه حالت كې صرف يوطلاق وركړل شي .بيا په سنت فى العددكې مدخول بهاوغيرمدخول بهادواړه برابردي ولی چې په يوه كلمه سره ددريوطلاقونوله واقع كولوڅخه ممانعت كړل شوی دی ترڅو خاوندله ندامت څخه محفوظ شي اوداخبره په غير مدخول بهاكې هم موجوده ده ،سنت فى الوقت خاص په مدخول بهاكې ثابتيږي هغه داچې ښځې ته په داسې طهركې طلاق وركړل شي په كوم كې چې له دي سره جماع نه وي شوي ولی چې دطلاق مشروعيت دحاجت په وجه دی اوملحوظ دليل حاجت دی اوحاجت دليل دتجدد رغبت په زمانه كې اقدام على الطلاق دی اودتجدد رغبت زمانه هغه طهردی كوم چې خالي عن الجماع وي .پاته شوه دحيض زمانه نوهغه دنفرت زمانه ده ، اوپه طهركې په يوځل جماع كولوسره رغبت كميږي نوپه حالت حيض اوطهرمع الجماع كې حاجت موجودنه دی ځكه نوسنت فى الوقت ضرف دادی چې په داسې طهركې طلاق وركړل شي كوم چې له جماع څخه خالي وي .

(٥)نوغيرمدخول بهاښځې ته طلاق وركول كيږي كه څه هم هغه دحيض په حالت كې وي يعنى غيرمدخول بهاته په طهراو حيض دواړو حالتونو كې طلاق وركول سنت فى الوقت ګرځول شوی دی ولی چې په غيرمدخول بهاكې رغبت په هرحال كې پوره وي خواه كه دادحيض په حالت كې وي اوكه دطهرپه حالت كې وي . لهذا غيرمدخول بهاښځې ته په حالت حيض كې وركړل شوی طلاق هم سنت فى الوقت شمارل كيږي.

(۶)اوتقسيم دي كړي په مياشتو دهغې ښځې طلاق كومې ته چې حيض نه ورځي يعنى كه ښځې ته چې دعمردديروالي ياكم عمري په وجه حيض نه ورځي اوددي خاوندوغواړي چې دي ته په سنت طريقه طلاق وركړي نوددي طريقه داده چې يوطلاق دي وركړي اواوكاردي نه په لري ترڅوچې يوه مياشت تيره شي بيادي دوهم طلاق وركړي اوبيادې تريوې مياشتې پوري كارنه په لري اوبيادي دريم طلاق وركړي

نودري طلاقونه به په دريو مياشتوکې پوره شي اودا په دي وجه چې مياشته دصغيره اوکبيره په حق کې دحيض قائم مقام ده .

(۷)داهم جائزده چې صغيري اوکبيرې ته له وطی وروسته طلاق ورکړي يعنی که ددي طلاق اووطی په منځ کې په زمانه سره فصل ونه کړل شي نوهم جائزده ولی چې په ذوات الحيض کې دطلاق بعدالجماع دکراهت اصلي وجه احتمال الحمل دی ولی چې دانه شي معلوميدای چې دابنځه حامله ده عدت به په وضع الحمل سره تيروي اويا غيرحامله ده عدت به په دري حيضه تيروي اوپه صغيره اوکبيرة کې ځرنګه چې دااحتمال نشته ځکه نوددوئ به حق کې طلاق بعدالجماع هم بلاکراهته مباح دی.

(۸)اوموطؤه يعنی مدخول بهاښځې ته دحيض په حال کې طلاق ورکول طلاق بدعی دی او ددي طلاق بدعی والی من حيث الوقت دی ولی چې په حديث شريف کې دي چې حضرت عبد الله بن عمر ﵄ دحيض په حالت کې خپلې ښځې ته طلاق ورکړي وو چې نبی کريم ﷺ پري خبرشونونبی کريم ﷺ حضرت عمر ﵁ ته وفرمايل چې :خپل زوی ته حکم وکړه چې دی خپلې ښځې ته رجوع وکړي . نودرجوع کولوله امرځخه په حالت حيض کې دطلاق ممانع فهميږي لهذا په حالت حيض کې طلاق ورکونکې کس لپاره خپلې ښځې ته رجوع کول مستحب دی دادځينې مشائخوقول دی .اصح دادی چې مراجعت کول واجب دی .اوله رجوع کولوځخه وروسته چې کله دابنځه له دي حيض ځخه پاکه شي په کوم کې چې طلاق ورکړل شوی وو اوبياحائضه شي بياله دي حيض ثانی ځخه هم پاکه شي نواوس خاوندلره اختياردی چې خپلې ښځې ته په طهرثانی کې طلاق ورکوي يايې نه ورکوي ولی چې دهرودووطلاقونه ترمنځ په يومستقل حيض سره فصل کول سنت دی ځرنګه چې له دي دوهم حيض ځخه وړاندي يوحيض کامل نه دی ځکه وويل شول چې دوهم حيض دي هم تيرکړي بياخاوندلره دطلاق ورکولواختياردی .

**ف**:امام محمد ﷫ په مبسوط کې شمداصورت ذکرکړی دی .امام طحاوی ﷫ ذکرکړي دي چې په کوم حيض کې چې طلاق واقع شوی دی له هغه ځخه په وروستنی طهراول کې دطلاق واقع کولواختيارشته .امام ابوالحسن کرخی ﷫ ددي دواړورايتونوته په تطبيق ورکولوسره فرمايلي دي چې دامام طحاوی ﷫ ذکرکړل شوی روايت دامام ابوحنيفه ﷫ قول دی اوپه مبسوط کې ذکرشوی روايت دصاحبينوقول دی.

**ف**:داهل ظواهروپه نزدپه حالت حيض کې طلاق نه واقع کيږي ولی چې دحيض په حالت کې طلاق منهی عنه دی لهذا مشروع به نه وي .احناف ځواب ورکوي چې حضرت ابن عمر ﵄ په حالت حيض کې طلاق ورکړی وونونبی کريم ﷺ حضرت عمر ﵁ ته وفرمايل ،مرابنک فليراجعها(خپل زوی ته امروکړه چې هغه خپلې ښځې ته رجوع وکړي )ښکاره ده چې له وقوع طلاق بغيرمراجعت ممکن نه دی لهذاهمدافهميږي چې دحيض په حالت کې هم طلاق واقع کيږي .

(۹)وَلَوْ قَالَ لِمَوْطُوءَتِهِ أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا لِلسُّنَّةِ وَقَعَ عِنْدَ كُلِّ طُهْرٍ طَلْقَةٌ(۱۰)وَإِنْ نَوَى أَنْ يَقَعَ الثَّلَاثُ السَّاعَةَ أَوْ عِنْدَ كُلِّ شَهْرٍ وَاحِدَةً صَحَّتْ (۱۱)وَيَقَعُ طَلَاقُ كُلِّ زَوْجٍ عَاقِلٍ بَالِغٍ وَلَوْ مُكْرَهًا(۱۲)وَسَكْرَانَ

**ترجمه**:كه خاوند خپلې موطؤه ته وويل چې ته دې په درې طلاقه طلاقه يې په سنت طريقه سره نو واقع كيږي په هر طهر كې يو طلاق ،او كه يې نيت كړى وي چې درې طلاقه دې اوس واقع شي ياپه هره مياشته كې دې واقع شي نو صحيح دى، او واقع كيږي طلاق د هر داسې خاوند كوم چې عاقل او بالغ وي كه څه هم دې مجبور كړل شوى وي ،ياپه نشته كې مست وي .

**تشريح**:(٩)كه چاخپلې مدخول بهابنځې ته وويل ،انت طالق ثلاثاللسنة (ته دې په درې طلاقه طلاقه يې پر سنت طريقه سره )نو په هر طهر كې يو طلاق واقع كيږي ولى چې په للسنة كې لام داختصاص لپاره دى اى الطلاق المختص بالسنة ،اوله سنت څخه فرد كامل يعنى سنت من حيث الوقت والعدد دواړه مراددي ولى چې له مطلق څخه فرد كامل مراديږي .نو كه خاوند په داسې طهر كې طلاق وركړ كوم چې له جماع څخه خالي دى نو يو طلاق في الحال واقع كيږي او كه يې په داسې طهر كې طلاق وركړ كوم چې له جماع څخه خالي نه وو نو ددې طلاق وقوع به مؤخره كيږي ترڅو چې ښځې ته حيض ورشي بيا پاكه شي اوس به يو طلاق واقع شي .

(١٠)او كه خاوند دا نيت كړى وي چې درې سره طلاقه دې دفعتا په همدې وخت كې واقع شي نو درې سره طلاقه په همدې وخت كې واقع كيږي همداشان كه خاوند دا نيت كړى وي چې د هرې مياشتې په پيل كې دې يو طلاق واقع شي نو د هرې مياشتې په پيل كې يو طلاق واقع كيږي ولى چې د درې طلاقو نو واقع كيدل دددې كلام انت طالق للسنة محتمل دى ولى چې دسنت دوه صورتونه دي يو سنى دوقوع په اعتبارسره او دوهم سنى دايقاع په اعتبارسره ،دسنى وقوع مطلب دادى چې درې طلاقونه يو ځاى واقع كړي او داپه سنت ثابت دى ولى چې نبى كريم ﷺ فرمايلي دي﴿ من طلق امرأته القابانت منه بثلاث والباقي ردعليه ﴾(يعنى چاچې خپلې ښځې ته زر طلاقه وركړل نو په درېو سره هغه بائنه كيږي او باقى پرده رد كيږي)،او دسنى ايقاع مطلب دادى چې درې طلاقه په سنت طريقه سره واقع كړل شي يعنى په درې طهره كې درې طلاقه وركړي په دې شرط چې هغه طهر له جماع څخه خالي وي .نو په انت طالق للسنة كې دوه احتماله دي يو داچې سنت كامله وي يعنى ايقاعا او وقوعا دواړو اعتبارونو سره سنت وي او دوهم داچې سنت قاصره وي يعنى وقوعا سنت وي ايقاعا نه وي نو كله چې خاوندانت طالق ثلاثاللسنة وويل نو سنت څرنګه چې مطلق دى لهذا سنت كامله يعنى ايقاعا او وقوعا دواړه به مرادوي څكه په دې صورت كې په هر هغه طهر چې په هغه كې جماع نه وي شوي يو طلاق واقع كيږي او كه ده ددفعتا د درېو طلاقو نو نيت كړي وي نو دده دكلام دمحتمل والى په وجه دا هم صحيح دى ولى چې ده دخپل كلام دمحتمل نيت كړى دى نه دغير محتمل .

**ف**:امام زفر رحمه الله فرمايي چې دفعتا د درېو طلاقو نو د واقع كولو نيت كول صحيح نه دى ولى چې په يو وخت درې طلاقه واقع كول بدعت دى او بدعت دسنت ضد دى او قاعده ده چې له شئ څخه دده ضد نشې اراده كيداى لهذا دللسنة په ويلو سره دبدعت اراده كول صحيح نه ده .موږ وايو چې ده دخپل كلام دمحتمل نيت كړى دى لهذا دده دانيت صحيح دى .

(١١)هر هغه خاوند چې عاقل بالغ بيدار وي او خپلې منكوحې ته طلاق وركړي نو طلاق واقع كيږي لقوله ﷺ﴿كل طلاق جائز الاطلاق الصبي والمجنون ﴾(هر طلاق جائزدى مګر دكوچنى او مجنون طلاق ) معتوه او بې

هوش دمجنون په حکم کې دی ،همداراز په عاقل بالغ کې دطلاق دورکولو اهليت اوولايت شرعيه شته اوښځه دطلاق محل ده لهذا طلاق نافذيږي. قول ولومكرهااى ولوكان الزوج مكرهاعلى انشاء الطلاق ،يعنی دهرعاقل بالغ طلاق واقع کيږي که څه هم په طلاق ورکولو کې په ده زبردستي شوي وي وجه دا ده چې مکره دطلاق دواقع کولو اراده کړي ده اوپه ده کې دطلاق دواقع کولو اهليت هم شته لهذا دمکره قصد طلاق به له حکم څخه خالي نه وي ترڅو تخلف الحکم عن العلة لازم نشي اوترڅو دمکره حاجت رفع شي ،دمکره حاجت دادی چې له کوم شئ څخه دی ويرول شوی دی له هغه څخه خلاصې ومومې.

ف :ليکن داکراه په صورت کې دطلاق دواقع کيدلو شرط دادی چې مکره په طلاق تلفظ وکړي نو که څوک په طلاق ليکلو مجبورکړای شوا وده دمجبوری په وجه وليکل چې ، پرمازما ښځه طلاقه ده نو طلاق نه واقع کيږي ولی چې کتابت طلاق دحاجت په وجه دعبارت طلاق قائم مقام دی حال داچې دلته دکتابت هيڅ حاجت نشته ، كمافي الشامية:(قوله لااقراره بالطلاق)..............وفي البحران المرادالا كراه على التلفظ بالطلاق فلواكره على ان يكتب طلاق امرأته فكتب لاتطلق لان الكتابة اقيمت مقام العبارة باعتبار الحاجة ولاحاجة هنا كذا في الخانية(ردالمحتار: ۲/۳۵۷)

ف :دامام شافعی رحمه الله په نزد دمکره طلاق نه واقع کيږي لقوله ﷺ ﴿رفع عن امتى الخطاء والنسيان ومااستكرهوا عليه﴾(يعنی زماله امت څخه پورته کړل شوي دي خطاء ،نسيان ،اوپه څه چې مجبور کړل شوي وي)،امام شافعی رحمه الله ته ځواب ورکړل شوی دی چې له دي څخه مراد دادی ،چې زماله امت له مذکوره بالاکسانو څخه اخروی حکم مرفوع دی نه داچې په دنياکې به ددوئ مؤاخذه نه وي همدا وجه ده چې په دنياکې پرقتل خطاء مؤاخذه يعنی ديت شته هوپه اخرت کې ده ته عذاب نه ورکول کيږي.

(۱۲)قوله وسكران اى يقع الطلاق ولوكان الزوج سكران ،يعنی د سکران (څوک چې په نشه کې مست وي) طلاق هم واقع کيږي ولی چې دده عقل په داسې سبب زائل شوی دی کوم چې معصيت اوګناه دی لهذا بطورزجراوتوبيخ دده عقل حکما باقی ګرځول شوی دی نو کله چې دده عقل حکما باقی ګرځول شوی دی نو دده دطلاق اراده هم صحيح ده اوکله چې دطلاق اراده صحيح ده نو دده واقع شوی طلاق به هم واقع کيږي.

ف :دامام شافعی رحمه الله يوقول دادی چې دسکران طلاق نه واقع کيږي ،دامام کرخی اوامام طحاوی مختارمذهب هم دادی چې طلاق نه واقع کيږي ولی چې قصداو اراده طلاق هغه وخت صحيح ده چې عقل وي حال داچې ددي کس خوعقل زائل شوی دی لهذا دده دطلاق اراده هم صحيح نه ده کله چې دده دطلاق اراده صحيح نه ده نو دده واقع شوی طلاق به هم نه واقع کيږي.

(۱۳)وَأَخْرَسَ بِإِشَارَتِهِ(۱۴)حُرًّا اوعَبْدًا(۱۵)لاطَلَاقُ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ وَالنَّائِمِ(۱۶)وَالسَّيِّدِ على امْرَأَةِ عَبْدِهِ(۱۷)وَاعْتِبَارُهُ بِالنِّسَاءِ حتى كان طَلَاقُ الْحُرَّةِ ثَلَاثًا وَطَلَاقُ الْأَمَةِ ثِنْتَيْنِ

**ترجمه** :اوډګونګی طلاق (واقع کيږي )دده په اشاره سره ،خوا ه که ازادوي اوکه غلام وي ،نه دکوچنی اومجنون اوويده طلاق ،اودمولی طلاق دخپل غلام پرښځه باندي ،اودطلاق اعتبارپه ښځوسره ده نودازادي ښځې طلاق دري دي اودمينځې دوه دي.

تشريح :(۱۳)قوله واخرس اى ويقع الطلاق ولوكان الزوج اخرس ،يعنى كه كوم كس پيدائشي ګونګى وي يا خو پيدائشي ګونګى نه وي بلكه وروسته دغه ناروغي ورپيښه شوي وي البته دائمي وي نو داسي ګونګ كه په اشاره سره طلاق وركړنو طلاق واقع كيږي ولى چي دګونګى اشاره معهودا ومعروفه ده لهذا ددفع حاجت لپاره به هغه دعبارت په شان وي ولى چي كله خو ګونګى ته هم دطلاق وركولو ضرورت پيښيږي .

(۱۴)قوله حرااوعبدااى ويقع الطلاق حراكان الزوج اوعبدا،يعنى په طلاق وركولو سره طلاق واقع كيږي خواه كه طلاق وركونكى ازادكس وي اوكه غلام وي دازادكس طلاق واقع كيدل خو ظاهردى ،دغلام طلاق ځكه واقع كيږي چي ملك نكاح دغلام حق دى نوده لره اختيار دى كه يې خوښه وي برقراردي وساتي اوكه يې خوښه وي ساقط دي كړي .

(۱۵)قوله لاطلاق الصبى والمجنون اى لايقع طلاق الصبى والمجنون ،يعنى كه كوچنى ياليونى ياويده خپلي ښځي ته طلاق وركړي نوددوئ طلاق نه واقع كيږي ولى چي نبى كريم ﷺ فرمايلي دي﴿كل طلاق جائز الاطلاق الصبى والمجنون﴾(يعنى هرطلاق جائزدى ماسوادكوچنى اومجنون له طلاق ځكه )،اوناثم ځرنګه چي عديم الاختياردى حال داچي اختيار فى التكلم دتصرف شرط دى په دي وجه دنائم طلاق هم نه واقع كيږي .

(۱۶)قوله والسيدعلى امراة عبده اى لايقع طلاق السيدعلى امراة عبده ،يعنى كه مولى دخپل غلام ښځي ته طلاق وركړنو داطلاق نه واقع كيږي ځكه چي له حضرت ابن عباس ﷺ ځخه روايت دى فرمايي چي يوغلام نبى كريم ﷺ ته شكايت وكړچي زمامولى دخپلي مينځي نكاح زماسره وكړه اوس غواړي چي زماا وماد ښځي ترمنځ تفريق وكړي ،نبى كريم ﷺ منبرته پورته شواودغلام دمالك په دي ارادي بې دخپلي ناراضي اظهاروفرمايوا و وي فرمايل ﴿الطَّلَاقُ لِمَنْ أَخَذَ بِالسَّاقِ﴾ (دطلاق حق زوج لره دى )،همدارازملك نكاح غلام لره حاصل دى مولى ته نه دى حاصل اوله ملك نكاح ځخه بغيرطلاق واقع كول ممكن نه دى.

(۱۷)داحنافوپه نزددطلاق په عدداوشماركي دښځي دحال اعتباردى كه ښځه ازاده وي نوخاوند ددريو طلاقونو مالک دى اوكه هغه مينځه وي نوزوج به ددووطلاقومالک وي لقوله ﷺ ﴿طَلَاقُ الْأَمَةِ ثِنْتَانِ﴾، همداراز ښځه محل دنكاح كيدل اوددي حلال والى ددي په حق كي نعمت دى په دي وجه چي په دي سره دادنفقه ،كسوة اوسكنى وغيره مستحقه ګرځي اودنعمتونوپه تنصيف كي رقيت لره دخل شته نومينځي لره به صرف يونيم طلاق وركول كيدوكوم چي دازادي ښځي دطلاق نصف دى مګر ځرنګه چي په طلاق كي تجزى اوتقسيم نه كيږي ځكه نودانيمايي طلاق پوره كړل شواومكمل دوه طلاقه شول .

ف:دامام شافعى رحمه الله په نزددخاونددحال اعتباردى يعنى كه خاوندغلام وونوددووطلاقومالک به وي اوكه ازادوو نوددريوطلاقومالک به وي په دواړوصورتونوكي خواه كه ښځه ازاده وي اوكه مينځه،لقوله ﷺ ﴿الطَّلَاقُ بِالرِّجَالِ وَالْعِدَّةُ بِالنِّسَاءِ﴾(دطلاق تعلق له نارينه وسره دى اودعدت تعلق له ښځوسره دى) وجه استدلال داده چي په حديث شريف كي طلاق دعدت په مقابل كي ذكرشوى دى اوپه عدت كي من حيث العددبالاتفاق دښځواعتباردى لهذدتقابل تقاضادادئ چي په طلاق من حيث العددكي به دنارينه ودحال اعتباروي .امام شافعى رحمه الله ته ځواب وركړل شوى دى چي دالطلاق بالرجال مطلب دادى چي طلاق واقع

كول دنارينه وپه اختياركې دى دښځوپه اختياركې نه دى هغه مطلب يې نه دى كوم چې تاخيستى دى .همداراز مذكوره بالاحديث مرفوع نه دى بلكه پرحضرت ابن عباس ﷺ باندې موقوف دى اودشوافع په نزدموقوف حديث قابل استدلال نه دى .

## بَابُ الطَّلَاقِ الصَّرِيحْ

داباب دطلاق صريح په بيان كې دى

صريح هغه كلام ته ويل كيږي چې دهغه مرادبالكل واضح وي په كوم كې چې هيڅ قسم شبهه نه وي اوپه نفس اوريدلوسره سامع وفهموې ،دااصولينوپه نزددى دفقهاؤپه نزدطلاق صريح هغه دى كوم چې په داسې الفاظوركړل شي كوم الفاظ چې دغلبه استعمال په وجه صرف په طلاق كې مستعمل وي په غيرطلاق كې مستعمل نه وي .

ددې باب له ماقبل سره مناسبت دادى چې كله مصنف رحمه الله له اصل طلاق اووصف طلاق څخه فارغ شونودانواع طلاق يعنى طلاق صريح اوطلاق كنايه په بيان يې شروع وكړه.

(۱۸)هو كَأَنْتِ طَالِقٌ وَمُطَلَّقَةٌ وَطَلَّقْتُكِ وَتَقَعُ وَاحِدَةٌ رَجْعِيَّةٌ(۱۹)وَإِنْ نَوَى الأَكْثَرَ او الإِبَانَةَ او لم يَنْوِ شيئا(۲۰)وَلَوْ قال أَنْتِ الطَّلَاقُ او أَنْتِ طَالِقٌ الطَّلَاقَ او أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقًا تَقَعُ وَاحِدَةٌ رَجْعِيَّةٌ بِلَا نِيَّةٍ او نَوَى وَاحِدَةً او ثِنْتَيْنِ(۲۱)وَإِنْ نَوَى ثَلَاثًا فَثَلَاثٌ

**ترجمه** :طلاق صريح لكه چې ووايې ،ته طلاق والايې ،اوته مطلقه يې اوماتاته طلاق دركړنوواقع كيږي په دې سره يورجعى طلاق ،كه څه هم يې نيت كړى وي دزياتويادبائن ياهيڅ نيت ونه كړي ،اوكه يې وويل ته طلاق يې ياته خاص طلاق والايې ياطلاق والايې نوواقع كيږي په دې سره يوطلاق رجعى بلانيته ياكه يې ديوه نيت كړى وي ، اوكه يې نيت كړى وي ددريونودرې واقع كيږي .

**تشريح** :(۱۸)طلاق (مرادتطليق يعنى طلاق وركول دي )پردوه قسمه دى ،صريح ،كنايه ،صريح هغه دى چې دهغه مرادپه واضح ډول ښكاره وي مثلاخاوندخپلې ښځې ته ووايې انت طالق (ته طلاقه يې)انت مطلقة (ته طلاق وركړل شوي يې )طلقتک (ماتاته طلاق دركړ).په دې الفاظوسره طلاق رجعى واقع كيږي ولې چې داالفاظ دطلاق په معنى كې استعماليږي دغيرطلاق په معنى نه استعماليږي لهذاداالفاظ دطلاق په معنى كې صريح دي اوله طلاق صريح څخه وروسته رجعت ثابتيږي دالله تعالى ارشاددى﴿ وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ ﴾(يعنى ددې ښځوخاونددوئ ديرته واپس كولوحق لري )له دې څخه دطلاق رجعى وروسته رجعت ثابتيږي لهذاله طلاق رجعى وروسته به خاوندلزه خپلې مطلقې ته درجوع حق وي .

**ف**: په انت طالق ويلوسره طلاق واقع كيږي كه څه هم دطالق طاء تاء ووايې ياقاف عين ياغين يالام ووايې ، اوكه څه هم دى ووايې چې محض دويرولولپاره قصداداسې كړي دى نوقضاء به دده تصديق نه كيږي الاپه دې صورت كې چې دى له تكلم بالطلاق څخه وړاندې پردې گواه قائم كړي كمافى الدرالمختار:(ويقع بها)اى بهذه الالفاظ ومابمعناهامن الصريح ويدخل نحوطلاغ وتلاغ وطلاک وتلاک اوط ل ق اوطلاق باش بلافرق بين العالم وجاهل وان قال تعمدته تخويفالم يصدق قضاء الااذااشهدعليه قبله به يفتى (الدرالمختار على هامش ردالمحتار:۴/۳۶۶)

(۱۹)په مذکوره بالادریو لفظو (انت طالق ،مطلقة ،طلقتک )کښ په هریوه صرف یو طلاق واقع کیږي که څه هم خاوندله یوه څخه دزائدنیت کړی وي ولی چې لفظ طالق دفردصفت دی ځکه چې دادیوې ښځې صفت دی حتی چې دووته طالقان اویاتوته طوالق ویل کیږي اوهرهغه لفظ کوم چې صفت فردوي هغه دعدداحتمال نه لري ولی چې عدددفردضددی اوشئ دخپل ضداحتمال نه لري لهذاپه انت طالق سره ددوویادریو طلاقونیت کول صحیح نه دي .همداشان که یې دطلاق بائن نیت کړی وي نوهم طلاق رجعی واقع کیږي ولی چې شریعت دطلاق صریح بائن والی له عدت تیریدلوسره معلق کړی دی حال داچې خاونددي دتنجیزنیت کوي لهذادده نیت معتبرنه دی ،همداشان که خاوندهیڅ نیت نه وي کړی هم طلاق رجعی واقع کیږي ولی چې داصریح طلاق دی اوطلاق صریح دنیت محتاج نه دی ولی چې نیت دمبهم دمتعین کولولپاره وي اودا الفاظ دغلبه استعمال په وجه دطلاق په معنی کښ صریح دي په دوئ کښ هیڅ ابهام نشته لهذادا الفاظ په خپله معنی په دلالت کولوکښ دنیت محتاج نه دي .

(۲۰)که خاوند خپلې ښځې ته وویل ،انت الطلاق یاطالق الطلاق یاطالق طلاقا(یعنی ته طلاقه یې )نوپه دې دریو صورتونو کښ که یې هیڅ نیت نه وي کړی یایې دیوه طلاق نیت کړی وي یاددوو ،نویو طلاق رجعی واقع کیږي ولی چې مذکوره بالاالفاظ دغلبه استعمال به وجه صریح دي اوبه صریح سره طلاق رجعی واقع کیږی اودنیت محتاج نه وي ،اوځرنګه چې دامصادردي اوپه مصادروکښ دعدداحتمال نه وي ځکه نوددوطلاقودنیت پروخت هم یو طلاق رجعی واقع کیږي ،انت الطلاق درجل عدل په شان دی دانت طالق په معنی دی ،په پاتی دووکښ الطلاق یاطلاقامصدرمعرف یامنکردتاکیدلپاره ذکرکړی دی.

(۲۱)که په مذکوره دریو الفاظوکښ خاونددریو طلاقونیت کړی وي نودري طلاقه واقع کیږي ولی چې دامصدراسم جنس دی اوداسم جنس دوه فرده وي یوفردحقیقي اودهم فردحکمي ،فردحقیقي یو طلاق دی اوفردحکمي دکل مجموعه یعنی دري طلاقه دي ،نوکله چې خاونددریو طلاقونیت وکونودفردحکمی والی په وجه سره صحیح دی .

ف:دامام شافعی اوامام مالک رحمهماالله تعالی په نزدددوو طلاقونیت هم صحیح دی یعنی که خاوندپه مذکوره الفاظو سره ددوو طلاقونیت وکړنودوه طلاقه واقع کیږي ولی چې کله ددریونیت کول صحیح دي نوددونیت به هم صحیح وي ځکه چې دوه ددریوجزء دی .موږوایوچې په مفرد الفاظوکښ دوحدت معنی ملحوظه وي خواه که وحدت فردی وي اوکه وحدت جنسی وي ،حال داچې په تثنیه کښ نه وحدت فردی شته اونه وحدت جنسی شته بلکه عددمحض دی ،البته که ښځه مینځه وي نوبیاپه مذکوره الفاظوسره ددوو طلاقونیت کول هم صحیح ده ولی چې دمینځې په حق کښ دوه طلاقه فردحکمی دی اوپه مذکوره الفاظودفردحکمی نیت کول صحیح دی.

(۲۲)وَاِنْ أَضَافَ الطَّلَاقَ اِلَی جُمْلَتِهَا اَوْ اِلَی مَا يُعَبَّرُ بِهِ عَنْهَا كَالرَّقَبَةِ وَالْعُنُقِ وَالرُّوحِ وَالْبَدَنِ وَالْجَسَدِ وَالْفَرْجِ وَالْوَجْهِ (۲۳)اَوْ اِلَی جُزْءٍ شَائِعٍ مِنْهَا كَنِصْفِهَا اَوْ ثُلُثِهَا تَطْلُقُ (۲۴)وَاِلَی الْيَدِ وَالرِّجْلِ وَالدُّبُرِ لَا

**ترجمه** :اوکه یې منسوب کړ طلاق دټولې ښځې طرف ته یاداسې حصې طرف ته چې په هغې سره له ټولې ښځې تعبیر کیږي لکه مغزی اوغاړه اوروح اوبدن اوجسم اوشرمګاه اوسراومخ ،یادښځې دجزء شائع طرف

ته لکه دا دي چې نصف او دي ثلث ته نو طلاق واقع کیږي ، او که یې منسوب کړ د لاس طرف ته یا د پښې طرف ته یا د دبر طرف ته نو نه واقع کیږي .

**تشریح** :(۲۲)یعنی که خاوند د ښځې کل ته د طلاق نسبت وکړ لکه انت طالق نو طلاق واقع کیږي . همداشان که یې د طلاق نسبت د ښځې دداسې جزء طرف ته وکړ چې په هغه سره له کل ځخه تعبیر کیدونو هم طلاق واقع کیږي لکه رقبتک طالق او عنقک طالق او روحک طالق الخ وجه داده چې په دي اعضاؤ سره له کل ځخه تعبیر کیږي نو دا د انت طالق په منزله دي .

(۲۳)قوله والی جزء شائع ای لو اضاف الطلاق الی جزء شائع من المرأة یقع الطلاق ،یعنی که خاوند د طلاق نسبت د ښځې جزء شائع یعنی د غیر معین جزء طرف ته وکړ نو هم طلاق واقع کیږي لکه نصفک طالق ،یا ثلثک طالق ،وجه داده چې جزء شائع د بیع وغیره تصرفاتو محل دی نو د طلاق محل به هم وي البته د ښځې بدن د طلاق په حق کې متجزی نه دی یعنی داسې نه دی چې د ښځې یو جزء دي طلاق وي او بل جزء دي طلاق نه وي لهذا په ټول کې طلاق ثابتیږي .

(۲۴)قوله والی الید والرجل والدبر لا ای لو اضاف الطلاق الی الید والرجل والدبر لا تطلق ،یعنی که خاوند وویل یدک طالق ،یا رجلک طالق ،یا دبرک طالق ،نو طلاق نه واقع کیږي ولی چې ید رجل وغیره داسې اعضاء نه دي چې په دوئ سره د ښځې له ټول بدن ځخه تعبیر وکړل شي ،همدا راز په دي کې اضافت طلاق د غیر محل طلاق طرف ته دی لهذا دا لغو دی لکه د ښځې لعاب یا نوکانو ته د طلاق نسبت کول .

(۲۵)وَنِصْفُ التَّطْلِيقَةِ او ثُلُثُهَا طَلْقَةٌ (۲۶)وَثَلَاثَةُ أَنْصَافِ تَطْلِيقَتَيْنِ ثَلَاثٌ (۲۷)وَمِنْ وَاحِدَةٍ او ما بين وَاحِدَةٍ إِلَى ثِنْتَيْنِ وَاحِدَةٌ (۲۸)وَإِلَى ثَلَاثٍ ثِنْتَانِ (۲۹)وَوَاحِدَةٌ فِي ثِنْتَيْنِ وَاحِدَةٌ إِنْ لَمْ يَنْوِ او نَوَى الضَّرْبَ (۳۰)وَإِنْ نَوَى وَاحِدَةً وَثِنْتَيْنِ فَثَلَاثٌ (۳۱)وَثِنْتَيْنِ فِي ثِنْتَيْنِ ثِنْتَانِ وَإِنْ نَوَى الضَّرْبَ

**ترجمه** :او نیمایې طلاق یا ثلث طلاق پوره طلاق دی ،او دري نصفه د دوو طلاقو دري طلاقه دي ،او که یې وویل چې له یوه ځخه تر دوو پورې یا له یوه ځخه د دوو ترمنځ نو یو دی ،او تر درېو پورې دوه دي ، او یو په دوه کې یو دی که هیڅ نیت و نه کړي یا د ضرب نیت وکړي ،او که یې د یوه او دوو نیت وکړ نو دري دي ،او دوه په دوو کې دوه دي که څه هم د ضرب نیت وکړي .

**تشریح** :(۲۵)که چا خپلې منکوحه ته نصف طلاق ورکړ یا یې ثلث طلاق ورکړ مثلا خاوند ښځې ته وویل چې ته دي په نصف طلاق طلاقه یې یا دي په ثلث طلاق طلاقه یې نو دا به پوره طلاق شمارل کیږي او هغه ښځه به په یوه طلاق مطلقه وي وجه یې داده چې طلاق متجزی یعنی په منقسم کیدلو سره ټوټه ټوټه کیدای نشي او قاعده داده چې د بعض مالا یتجزی ذکر د کل د ذکر په شان وي یعنی د غیر متجزی شئ د یوه جزء ذکر د کل ذکر شمارل کیږي نو ځرنګه چې نصف او ثلث د غیر متجزی شئ یعین طلاق اجزاء دي ځکه نو په دوئ سره پوره طلاق واقع کیږي .

(۲۶)او که خاوند خپلې ښځې ته د دوو طلاقو دري نصف طلاقه ورکړل نو دري طلاقه واقع کیږي مثلا خاوند خپلې ښځې ته وویل ته دي د دوو طلاقو په دري نصف طلاقو طلاقه یې نو دري طلاقه واقع کیږي

ولی چې ددوو طلاقو نصف یو طلاق دی او بل نصف دوهم طلاق دی او دریم نصف دریم طلاق دی په دې ډول دري طلاقه واقع کیږي.

(۲۷) قوله ولو من واحد او مابين واحدة الى ثنتين واحدة اى لو قال انت طالق من واحدة الى ثنتين او قال انت طالق مابين واحدة الى ثنتين تقع واحدة ،یعنی که خاوند خپلې ښځې ته وویل انت طالق من واحدة الى ثنتين ،ته دي له یوه څخه تردوو طلاقو په طلاق باندي طلاقه یې یایې ووېل انت طالق مابين واحدة الى ثنتين ته دي طلاقه یې له یوه څخه ددوو ترمنځ ،نوپه دې دواړو صورتونو کې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدیو طلاق واقع کیږي ولی چې قاعده ده چې که غایتین دوه داسې عددونه وو دکوموپه منځ کې هم کوم عددوو نواکثرمن الاقل به مرادوي مثلاً وي ویل انت طالق من واحد الى ثلث په دې غایتین دوه عدده دي یعنی یو او دري ،او د دواړو په منځ کې یو بل عدد یعنی دوه شته نو په دې مجموعه کې اقل عدد یو دی او له دې څخه لوړ دوه دي نو اکثر من الاقل دوه دي لهذا دوه طلاقه مراددي،اوکه غایتین دوه عدده وي مگرددواړو په منځ کې بل کوم عددنه وي نو له دواړو څخه به اقل من الاکثر مرادوي مثلاً وي ویل انت طالق من واحدة الى ثنتين، نوځکه چې دیوه او دوو په منځ کې کوم عدد نشته او په دواړوکې یو اقل دی او دوه اکثر دي نو د قاعدې مطابق به اقل من الاکثر مرادوي لهذا په دې صورت کې یو طلاق واقع کیږي.

ف: دصاحبینو په نزدد دواړه غایتین په مغیاکې داخلې دي یعنی غایه ابتداء او غایه انتهاء دواړه په مغیا کې داخلې دي په دې وجه دخاوند په انت طالق من واحدة الى ثنتين او انت طالق مابين واحدة الى ثنتين ویلو کې دوه طلاقه واقع کیږي ،اودامام زفر رحمه الله په نزد ځکه چې دواړه غایې په مغیاکې داخلې نه دي لهذا په مذکوره دواړو صورتونو کې یو طلاق هم نه واقع کیږي.

ف: مروی ده چې دهارون الرشید په دربارکې داصمعی او امام زفر ترمنځ مناظره وشوه ،اصمعی له امام زفر څخه پوښتنه وکړه چې که کوم خاوند خپلې ښځې ته وویل انت طالق مابين واحدة الى ثنتين نو څو طلاقه واقع کیږي ؟امام زفر ځواب ورکړ یو طلاق نه واقع کیږي ولی دواړه غایې په مغیاکې داخلې نه دي .اصمعی پوښتنه وکړه چې ستاعمر څومره دی ؟امام زفر وویل مابين ستين الى سبعين ،اصمعی وویل چې ستاد قاعدې مطابق خو ستاعمر نهه کاله شو ولی چې غایه ابتداء یعنی شپیته او غایه انتهاء یعنی اویایم کال دواړه ستا په عمر کې شامل نه دي لهذا ستاعمر نهه کاله پاتې شو.

(۲۸) قوله والى ثلث ثنتان اى لو قال انت طالق من واحدة الى ثلث فالواقع ثنتان ،یعنی که خاوند وویل انت طالق من واحدة الى ثلاث ،ته دي طلاقه یې له یوه څخه تردریو پورې ،نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دوه طلاقه واقع کیږي ولی چې په تیره شوې مسئله کې قاعده بیان شوه چې کله غایتین دوه داسې عددونه وي چې دهغو په منځ کې یو بل عدد وي نو له دې څخه مراد اکثر من الاقل وي یعنی له اقل عدد څخه اکثر والا عدد مرادوي او من واحد الى ثلث کې اقل عدد واحد دی لهذا کوم عدد چې له ده څخه اکثر وي هغه به مراد وي کوم چې دوه دي لهذا دوه طلاقه واقع کیږي ،حال داچې دصاحبینو په نزد دري طلاقه واقع کیږي او دامام زفر په نزد یو طلاق واقع کیږي کما مر التفصیل.

**ف**:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لماقال المفتی غلام قادرالنعمانی :القول الراجح هوقول ابی حنيفه ،قال ابن الهمام وابوحنيفه يقول المارقع كذالك فيمامرجعه اباحة كالمثل المذكوراماما اصله الحظرحتى لايباح الالدفع الحاجة فلاوالطلاق منه فكان قرينة على عدم ارادة الكل غيران الغاية الاولى لابدمن وجودها ليترتب عليها الطلقة الثانية (القول الراجح: ۱/ ۳۱۱)

(۲۹)قوله وواحدة فی ثنتين واحدة ای لوقال الزوج انت طالق واحدة فی ثنتين تقع طلقة واحدة ،يعنی که خاوند وويل ،انت طالق واحدة فی ثنتين ،ته دي طلاقه يې يوپه دوه کې ،نويوطلاق واقع کيږي خواه که دده هيڅ نيت هم نه وي يايې ديوه په دوه کې دضرب ولونيت کړی وي په هرصورت يوطلاق واقع کيږي ولی چې که يې دضرب نيت کړی وي نودضرب اثرصرف دادی چې په مضروب فيه کې په ضرب ورکولوسره دمضروب اجزاء ډيريږي نه داچې دمضروب عدد ډيريږي که نه نو په دنياکې به هيڅوک فقيرنه وای ،لهذاعدد همدايوپاته کيږي البته دده اجزاء په ډيريدوسره دوه گرځي اوديوه طلاق په ډيرواجزاؤکيدلو سره په طلاق کې تعددنه پيداکيږي بلکه طلاق همدايوپاتې کيږي لهذادضرب دنيت کولوپه صورت کې يوطلاق واقع کيږي .اودنيت دعدم په صورت کې ځرنګه چې داعبارت په ضرب کې نص دی لهذاپه دي صورت کې هم يوطلاق واقع کيږي.

(۳۰)اوکه خاوندپه انت طالق واحدة فی ثنتين کې ديوه اودوونيت کړی وويعنی دانيت يې کړی وو چې ته دي طلاقه يې په يواودوه طلاقه نودري طلاقه واقع کيږي ولی چې په دي صورت کې لفظ دفی استعارة دواوپه معنی دی ،اوواودجمع لپاره دی نويواودوه طلاقه په جمع کولوسره دري طلاقه کيږي نوداداسې شوه لکه چې څوک ووايې انت طالق واحدوثنتين .

(۳۱)قوله وثنتين فی ثنتين ثنتان ای لوقال الزوج انت طالق ثنتين فی ثنتين فالواقع ثنتان ،يعنی که خاوندخپلې ښځې ته وويل انت طالق ثنتين فی ثنتين (ته طلاقه يې دوه په دووکې )نودوه طلاقه واقع کيږي ولی چې که خاونددظرفيت قصدکړی وي نوطلاق دظرفيت صلاحيت نه لري لهذاظرف يعنی له فی څخه مؤخردوه نه واقع کيږي بلکه صرف مظروف يعنی له فی څخه مقدم دوه واقع کيږي .اوکه خاونددضرب قصدکړی وي نوبيا ضرب سره دطلاق اجزاء ډيريږي په طلاق کې تعددنه پيداکيږي نوطلاق هغه پاته کيږي لهذادضرب دنيت کولوپه صورت کې هم صرف دوه طلاقه واقع کيږي .

(۳۲)وَمِن هٰهُنَا اِلَى الشَّامِ وَاحِدَةٌ رَجعِيَةٌ و (۳۳)بِمَكَّةَ اَو فِي مَكَّةَ اَو فِي الدَّارِ تَنجِيز (۳۴)وَاِذَا دَخَلتِ مَكَّةَ تَعلِيقٌ

**ترجمه** :(اوکه يې وويل ته طلاقه يې )له دي ځايه څخه ترشام پوري نويورجعی طلاق دی ،اوله مکې سره يا په مکه کې يا په کورکې نوداطلاق فی الحال دی ،او(دخاوندپه دی ويناکې چې )کله چې ته داخله شې مکې ته نوداتعليق طلاق دی .

**تشريح** :(۳۲)قوله ومن هناالی الشام واحدة ای لوقال انت طالق من هناالی الشام تقع طلقة واحدة ،يعنی که خاوندخپلې ښې ته ويل ،ته طلاقه يې له دي ځای څخه ترشام پوري ،نويورجعی طلاق واقع کيږي دليل دادی چې ده طلاق قصراوکوتاه کړولی چې که خاوندالی الشام نه وای ويلی نوطلاق ددنياپه هرطرف کې واقع کيدلونوکله چې ده الی الشام ووايونوده طلاق ترمحدودمکان پوري مقصورکړحال داچې طلاق بنفسه دقصرمحتمل نه دی ولی چې طلاق جسم نه دی لهذاپه مذکوره صورت کې دده حکم په رجعی پوري مقصورکړل شوچې په سره يو طلاق رجعی واقع کيږي .

ل) دامام زفر رحمه الله په نزد په مذكوره صورت كې يو طلاق بائن واقع كيږي ولې چې خاوند طلاق په طول سره متصف كو او طول د قوت په معنى كې استعماليږي او د قوت اظهار په بائن كې كيږي نه په رجعى كې ځكه په دې صورت كې يو طلاق بائن واقع كيږي .

(۳۳) قوله وبمكة او في مكة اى لوقال الزوج انت طالق بمكة او في مكة او في الدار فالطلاق في هذه الصور تنجيز ، يعنى كه چا خپلې ښځې ته و ويل انت طالق بمكة يا انت طالق في مكة (ته طلاقه يې په مكه كې) يا يې و ويل انت طالق في الدار (ته په كور كې طلاقه يې) نو دا منجز طلاق دى يعنى في الحال واقع كيږي ولې چې طلاق داسې نه دى چې په يوه مكان كې واقع وي او په بل مكان كې واقع نه وي بلكه طلاق چې كله واقع كيږي نو هر ځاى واقع كيږي .

(۳۴) قوله وفي اذدخلت مكة تعليق اى لوقال الزوج انت طالق اذادخلت مكة فالطلاق تعليق بدخول مكة ، يعنى كه خاوند خپلې ښځې ته و ويل انت طالق اذادخلت مكة (ته دې طلاقه يې كله چې مكې ته داخله شې) نو دا د زوج له طرف څخه تعليق طلاق دى يعنى طلاق په شرط پورې معلق كول دي نو تر كله چې ښځ مكه مكرمه ته داخله نه شي طلاق نه واقع كيږي ولې چې زوج طلاق په دخول مكه پسې معلق كړى دى .

## فَصْلٌ فِي إِضَافَةِ الطَّلَاقِ إِلَى الزَّمَانِ

دا فصل د طلاق د زمانې طرف ته د منسوب كولو په بيان كې دى .

مطلب دا دى چې زوج د طلاق حكم د طلاق د تكلم له زمانې څخه وروسته زمانې طرف ته بغير له كلمې د شرط څخه مؤخر كړي مثلاً كوم كس خپلې ښځې ته نن و وايي چې انت طالق غدا ته دې صبا طلاقه يې ، نو په داسې صورت كې طلاق څه وخت واقع كيږي ؟ د دې صورت تفصيل او د دې صورت په شان نورو ډيرو صورتونو تفصيل په متن كې را روان دى .

طلاق پر درې قسمه دى ، مرسل ، مصاف الى الوقت ، او معلق بالشرط . د طلاق مرسل په صورت كې په طلاق وركولو سره فوراً طلاق واقع كيږي او د مضاف الى الوقت په صورت كې د وخت په راتلو سره واقع كيږي . او معلق بالشرط هغه وخت واقع كيږي كوم وخت چې شرط موجود شي . مصنف رحمه الله له دې څخه وړاندې د طلاق مرسل تفصيل د سنى او بدعى په ضمن كې بيان كړ ، اوس طلاق مضاف الى الوقت بيانوي او وروسته به د معلق بالشرط تفصيل بيان كړي .

(۳۵) أَنتِ طَالِقٌ غَدًا او فِي غَدٍ تَطْلُقُ عِنْدَ الصُّبْحِ (۳۶) وَنِيَّةُ الْعَصْرِ تَصِحُّ فِي الثَّانِي (۳۷) وفِي الْيَوْمِ غَدًا او غَدًا الْيَوْمَ يُعْتَبَرُ الْأَوَّلُ (۳۸) أَنتِ طَالِقٌ قَبْلَ أَنْ أَتَزَوَّجَكِ او أَمْسِ وَنَكَحَهَا الْيَوْمَ لَغَوْ (۳۹) وَإِنْ نَكَحَهَا قَبْلَ أَمْسِ وَقَعَ الْآنَ

**ترجمه** : (كه خاوند و ويل) ته طلاقه يې صبا يا په صبا كې نو هغه طلاقيږي په صبا كيدلو سره ، او د عصر نيت صحيح دى په دوهمه جمله كې ، او كه يې و ويل ته طلاقه يې نن صبا يا صبا نن نو د اولنى لفظ اعتبار كيږي ، (كه يې و ويل) ته طلاقه يې له دې څخه وړاندې چې زه ستا سره نكاح كوم يا پرون او نكاح يې نن كړي وي نو دا لغو دى ، او كه يې نكاح كړي وي له پرون څخه وړاندې نو په همدې وخت كې طلاق واقع كيږي .

**تشریح** :(۳۵)که خاوندخپلې ښځې ته ووېل ،انت طالق غدا،ته طلاقه یې صبانودفجرثانی له طلوع کیدلوسره پردي طلاق واقع کیږي ولی چې ده ښځې لره په جمیع غدکې په طلاق متصف کړي ده یعنی دصباله ابتداء څخه ترانتهاپوري په ټوله مده کې یې داپه طلاق متصفه کړي ده لهذادصباورځې په شروع کیدلوسره داطلاقیږي ،همداحکم دانت طالق فی غد(ته طلاقه یې په صباکې )هم دی ،البته خاوندکه په اولنی صورت کې دعوی وکړه چې مادصبادعصرنیت کړی وو نوقضاء به دده تصدیق نه کیږي ،هوفی ماېینه وبین الله دده دانیت صحیح دی.

(۳۶)اومذکوره بالاحکم دانت طالق فی غد(ته طلاقه یې په صباکې )هم دی البته که خاوندپه انت طالق فی غدکې دعصرنیت وکړنودامام ابو حنیفه رحمه الله په نزددیانة اوقضاء دواړه طرزه صحیح دی ولی چې دفی کلمه دظرفیت لپاره ده اوظرفیت دټولې ورځې داستعیاب مقتضی نه دی نوکه دکوم معین وخت نیت نه وي نودمزاحم دنه وجودپه وجه به بالضرورة طلوع فجرثانی مرادوي اوکه یې کوم وخت متعین کړنومتعین قصدی له متعین ضروري څخه اولی دی لهذا دکوم وخت تعین چې یې کړی دی هغه به مرادوي.

**ف**:دصاحبینوپه نزدپه مذکوره بالادواړوصورتونوکې دعصردنیت دکولوپه دعوی کې به دقضاء دزوج تصدیق نه کیږي ولی چې ده خپله ښځه په صباټوله ورځ کې په طلاق متصفه کړي ده نوله کوم یوه جزء سره مخصوص کول تخصیص فی التعمیم دی په کوم کې چې ده لره تخفیف هم دی لهذاقضاء به دده تصدیق نه کیږي.

(۳۷)قوله ولی الیوم غدااي لوقال انت طالق الیوم غدااوانت طالق غداالیوم ،یعنی که خاوندښځې ته ووېل چې ته طلاقه یې نن ،صبا،یاته طلاقه یې صبا،نن،نودااولنی لفظ اعتباربه کیږي لهذاپه اولنی صورت کې به نن طلاق واقع کیږي ولی چې الیوم دفی الحال طلاق لپاره دی اوغداد صبادطلاق لپاره دی اومنجزطلاق یعنی فی الحال واقع شوی طلاق داضافت الی الغدااحتمال نه لري .اوپه دوهم صورت کې صباطلاق واقع کیږي ولی چې غدااضافت لپاره دی اوطلاق مضاف الی المستقبل منجزنه وي ولی چې په دي کې داضافت ابطال دی لهذاپه دواړوصورتونوکې لفظ ثانی لغودی.

(۳۸)قوله انت طالق قبل ان اتزوجک اي لوقال الزوج لامرأته انت طالق قبل ان اتزوجک ،یعنی که خاوندووېل ، انت طالق قبل ان اتزوجک (ته طلاقه یې وړاندي تردي چې زه له تاسره نکاح وکړم )نودخاونددا کلام لغودی لهذ اپه دي سره یوطلاق هم نه واقع کیږي ولی چې طلاق یې دداسې زمانې طرف ته منسوب کړی دی کومه چې له طلاق سره منافی ده ولی چې له نکاح څخه وړاندي دطلاق وجودنه وي لهذاداسې طلاق نه واقع کیږي .همداشان که خاوندووېل ،انت طالق امس (ته طلاقه یې پرون )حال داچې دنن نکاح ورسره کړي ده نوهم طلاق نه واقع کیږي لمامر.

(۳۹)اوکه خاوندووېل انت طالق امس (ته پرون طلاقه یې )حال داچې خاوندله دي سره ترپرون وړاندي نکاح کړي وه نوطلاق فی الحال واقع کیږي ولی چې په دي صورت کې دطلاق نسبت دداسې زمانې طرف ته نه دی چې له طلاق سره منافی ده ولی کومې زمانې ته چې یې دطلاق نسبت کړی دی په هغه زمانه

کې دا ښځه د ده منکوحه ده لهذا طلاق واقع کیږي او څرنګه چې انشاء فی الماضی انشاء فی الحال ده ځکه نو داسې طلاق فی الحال واقع کیږي .

(۴۰)وَأَنتِ طَالِقٌ مالم أُطَلِّقکِ او مَتی لم أُطَلِّقکِ وَسَکَتَ طَلَقَتْ (۴۱) وفي إن لم أُطَلِّقکِ او إذا أطَلِّقکِ او إذا مالم أُطَلِّقکِ لاحتی یَمُوتَ أحدُهُمَا (۴۲) أَنتِ طَالِقٌ مالم أُطَلِّقکِ أَنتِ طَالِقٌ طَلَقَتْ هذه الطَّلقة

**ترجمه** :ته طلاقه یې کله چې زه تاته طلاق درنه کړم یاپه کوم وخت کې زه تاته طلاق درنه کړم یاتر کومه وخته پورې چې زه تاته طلاق درنه کړم او خاموش شو نو طلاق واقع کیږي ،او په دې جملو کې چې که زه تاته طلاق درنه کړم یا کله چې زه تاته درنه کړم یاتر څو چې زه تاته طلاق درنه کړم طلاق نه واقع کیږي تر څو چې یو مړ شي ،ته طلاقه یې تر کله چې زه تاته طلاق درنه کړم ته طلاقه یې نو داورستنی طلاق واقع کیږي .

**تشریح** :(۴۰)که خاوند وویل انت طالق مالم اطلقک (ته دې طلاقه یې تر کله چې زه تاته طلاق درنه کړم ) یایې وویل ،انت طالق متی لم اطلقک (ته طلاقه یې په کوم وخت چې زه تاته طلاق درنه کړم )،یایې وویل انت طالق متی مالم اطلقک (ته طلاقه یې تر څه وخته پورې زه تاته طلاق درنه کړم )او خاوند خاموش شو نو له خاموشۍ سره متصل پرېښځې طلاق واقع کیږي ولې چې خاوند طلاق داسې زمانې ته منسوب کړکومه زمانه چې له طلاق ورکولو څخه خالي وي او هغه زمانه کوم وخت چې خاوند خاموش شو موجوده شوه لهذا له خاموشۍ وروسته نو را طلاق واقع کیږي.

(۴۱)قوله وفي ان لم اطلقک او اذالم اطلقک ای فی قول الزوج انت طالق ان لم اطلقک الخ ،یعنی که خاوند وویل انت طالق ان لم اطلقک (ته طلاقه یې که ما تاته طلاق درنه کړ)یایې وویل انت طالق اذالم اطلقک ،یایې وویل انت طالق اذامالم اطلقک (ته طلاقه یې کله چې زه تاته طلاق درنه کړم )نو په دې درېو صورتونو کې دامام صاحب په نزد د احد الزوجین له مرګ څخه لږ وړاندې د یاس پروخت طلاق واقع کیږي یعنی کله چې له ژوند څخه مایوس شي نو طلاق واقع کیږي ولې چې په دې صورتونو کې طلاق معلق شوی دی د خاوند له طرف څخه د طلاق د نه ورکولو پورې او عدم تطلیق هغه وخت متحقق کیږي کله چې خاوند له ژوند څخه بالکل مایوس شي ولې چې له ژوند څخه له مایوس کیدلو وړاندې هر وخت د طلاق ورکولو امکان شته لهذا د یاس پروخت چې کله د عدم تطلیق شرط متحقق شي نو طلاق واقع کیږي .

**ف**:د صاحبینو په نزد په دوهم او دریم صورت کې څرنګه زوج خاموش شي نو طلاق واقع کیږي ولې چې لفظ اذا د وخت په معنی کې مستعمل دی کماقال الله تعالی﴿ واذالشمس کورت ﴾(یعنی کوم وخت چې لمر بې نوره شي )،د شرط په معنی نه ده لهذا د متی او متی ما په شان دی د کوم تفصیل چې تیر شو چې د خاوند له خاموشۍ سره طلاق واقع کیږي .امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایي چې لفظ اذا د شرط او وخت دواړو لپاره مستعمل دی نو که د شرط په معنی کې مستعمل وي نو د لفظ ان په شان به طلاق فی الحال نه واقع کیږي او که د وخت معنی کې مستعمل وي نو د متی په شان به فی الحال طلاق واقع کیږي لهذا په وقوع طلاق او عدم وقوع کې شک دی او د شک په صورت کې طلاق نه واقع کیږي .

**ف**:د صاحبینو قول راجح دی لمافی الشامیة :(قوله مثل ان عنده )ای فلاتطلق عنده مالم یمت احدهما وتطلق عندهما للحال بسکوته والحاصل ان اذا عنده هنا حرف لمجرد الشرط لانها تستعمل ظرفا وحرفا فلایقع الطلاق للحال بالشک وهذا القول بعض النحاة کمافی المغنی

لكن ذكران جمهورهم على الهامتضمنة معنى الشرط ولاتخرج عن الظرفية قال فى البحروهومرجح لقولهماهناولترجحه فى فتح القدير(ردالمحتار: ۲/۳۸۲)

(۴۲)قوله انت طالق مالم اطلقک انت طالق اى لوقال الزوج لامرأته انت طالق الخ ،يعنى كه خاوند ښځې ته وويل انت طالق مالم اطلقک انت طالق (ته طلاقه يې په هغه وخت کې چې زه تاته طلاق درنه کړم ته طلاقه يې )نو ددې جملې په اخرى لفظ انت طالق سره يو طلاق واقع کيږي دقياس تقاضاخوداده چې په مخکنۍ جمله سره هم يو طلاق واقع شې ولې چې دمخکنۍ جملې انت طالق والاطلاق يې په داسې زمانه پورې معلق کړې دی چې له تطليق څخه خالي وي اوهغه زمانه موجوده شوه په دې دول چې له مخکنۍ جملې څخه له فراغت وروسته ددوهمې جملې ترتکميل پورې زمانه دعدم تطليق زمانه ده لهذا په دې زمانه کې په مخکنۍ جمله سره بايد طلاق واقع شوی وای .همدادامام زفر رحمه الله قول دی .داستحسان وجه داده چې دقسم دسرته رسولوزمانه په دلالت حال سره له يمين څخه مستثنى وي ځکه چې له قسم څخه همداقسم پوره کول مقصودوي لهذاانت طالق دتکميل په زمانه کې به هغه معلق طلاق نه واقع کيږي .

(۴۳)أَنتِ كَذَا يومَ أَتَزَوَّجُکِ فَنَكَحَهَا لَيلًا حَنِثَ (۴۴)بِخِلَافِ الأَمرِ بِاليَدِ (۴۵)انا مِنکِ طَالِقٌ لَغوٌ وَاِن نَوى (۴۶)وَتَبِينُ فِي البَائِنِ وَالحَرَامِ (۴۷)أَنتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا او مع مَوتِي او مع مَوتِکِ لَغوٌ (۴۸)وَلَو مَلَكَهَا او شِقصَهَا او مَلَكَتهُ او شِقصَهُ بَطَلَ العَقدُ (۴۹)فَلَو اشتَرَاهَا وَطَلَّقَهَا لم يَقَع

**ترجمه** :ته طلاقه يې کومه ورځ چې زه له تاسره نکاح وکړم بيا ده نکاح وکړه په شپه کې نو حانث کيږي ،په خلاف دامر باليد ،زه له تاڅخه طلاق يم لغودی که څه هم يې دطلاق نيت کړی وي ،اوجدا کيږي په لفظ دبائن اوحرام سره ،ته طلاقه يې يوه يې يا زما له مرګ سره يا ستاله مرګ سره لغودی،اوکه خاوند دټولې ښځې يادهغې ديوه جزء مالک شو يا ښځه دټول خاوند يادهغه ديوه جزء مالکه شوه نو باطليږي عقدنکاح ،نوکه يې واخيسته اوطلاق يې ورکړنو نه واقع کيږي .

**تشريح** :(۴۳)قوله انت كذا يوم اتزوجک اى لوقال الزوج لامرأته انت طالق يوم اتزوجک ،يعنى كه چاخپلې ښځې ته وويل انت طالق يوم اتزوجک ،ته طلاقه يې په کومه ورځ چې زه له تاسره نکاح وکړم بيايې په شپه کې له همدې ښځې سره نکاح وکړه نو حانث کيږي يعنى طلاق واقع کيږي ولې چې لفظ يوم که له فعل ممتدسره مقترن شو لکه نکاح کول ،طلاق ورکول وغيره بيا دمطلق وخت په معنى دی ،دبياض نهارپه معنى نه دی اومطلق وخت شپې ته هم شامل دی.لهذا په شپه کې دنکاح کولوپه صورت کې هم طلاق واقع کيږي ولې چې نکاح کول فعل غيرممتددی .

**ف**:له فعل ممتدڅخه مراددادی چې دهغه په کولوکې وخت لګيږي لکه روژه نيول ،يوځای سکونت اختيارول ،اوله فعل غيرممتدڅخه مراد داسې فعل دی چې په هغه کې طويل وخت نه لګيږي بلکه مطلق وخت ورته کافی وي لکه نکاح کول طلاق ورکول وغيره .

(۴۴)په خلاف ددې صورت چې څوک خپلې ښځې ته وواېي امرک بيدک يوم يقدم زيد، ستااختيار ستاپه لاس کې دی په کومه ورځ چې زيدراشي ،چې په دې صورت کې به ښځې ته هغه وخت اختياروي چې کله زيدپه ورځ کې راشي وجه يې داده چې لفظ يوم که له فعل ممتدسره مقترن وو نو بيادبياض نهارپه معنى دی دمطلق وخت په معنى نه دی چې شپې ته هم شامل شي ،اودزيدله سفر څخه

قدوم ځرنګه چې په راتلو سره وجود پیدا کوي او راتلل فعل ممتد دی لهذا په دي صورت کې به له لفظ یوم څخه بیاض نهار مراد وي مطلق وخت به مراد نه وي .

(۴۵)قوله انا منک طالق لغووان نوی ای لوقال الزوج لامرأته انا منک طالق لغووان نوی الطلاق ،یعنی که خاوند خپلې ښځې ته ویل انا منک طالق (ماته ستا له طرفه طلاق دی )نو احناف فرمایي چې دده دا ویل لغو دي که څه هم ده دطلاق ورکولو نیت کړی وي حال دا چې ائمه ثلاثه فرمایي چې که ده دطلاق نیت کړی وونو طلاق واقع کیږي ولې چې طلاق دازاله نکاح لپاره مشروع کړل شوی دی او نکاح په ښځه او نارینه دواړه سره قائمه ده لهذا دطلاق نسبت دنارینه طرف ته هم صحیح دی لکه ځرنګه چې دښځې طرف ته صحیح دی .داحنافو دلیل دادی چې طلاق دازاله قید لپاره مشروع شوی دی او قید خو په ښځه کې دی په نارینه کې خو هیڅ قید نشته بیا له نارینه څخه دازاله قید څه مطلب دی .

(۴۶)قوله وتبین فی البائن والحرام ای تبین المرأة لوقال الزوج لامرأته انا منک بائن اوقال انا علیک حرام ،یعنی که خاوند خپلې ښځې ته وویل انا منک بائن (زه له تا څخه بائن یم )یا یې وویل ،انا علیک حرام (زه پر تا حرام یم )نو که خاوند دطلا ق نیت کړي وو نو طلا ق واقع کیږي ولې چې دابانت لفظ دتعلق اوپیوست والی دزائلولو لپاره دی او تعلق په ښځه او نارینه دواړو کې مشترک دی لهذا ابانت له دواړو څخه دهر یوه طرف ته منسوب کول صحیح دی ،همداشان دتحریم لفظ دحلت دزائلولو لپاره دی او حلت هم په دواړو کې مشترک دی لهذا دتحریم لفظ نسبت هم ددواړو طرف ته صحیح دی .

(۴۷)قوله انت طالق واحدة اولا ای لوقال الزوج لامرأته انت طالق واحدة اولا ،اوقال انت طالق مع موتی اوقال انت طلاق مع موتک ،یعنی که خاوند خپلې ښځې ته وویل ،انت طالق واحدة اولا(ته دي په یوه طلا ق طلاقه یې یا دي نه یې )یا یې وویل انت طالق مع موتی (ته طلاقه یې زما له مرګ سره )یا یې وویل ،انت طالق مع موتک (ته طلاقه یې ستا له مرګ سره )نو په دي دریواړه صورتونو کې طلاق نه واقع کیږي .امام محمد رحمه الله فرمایي چې په اولنی صورت کې یو رجعی طلاق واقع کیږي ولې چې دا ولا په لفظ سره په واحدة کې شک پیدا شو لهذا په واحدة طلاق نه واقع کیږي مګر انت طالق خو سالم پاتې دی لهذ په انت طالق یو رجعی طلاق واقع کیږي .

دشیخینو په نزد طلاق نه واقع کیږي ولی قاعده داده چې کله عدد له وصف سره مقارن وي نو طلاق په عدد واقع کیږي لهذا په انت طالق ثلاثا کې طلاق په عدد یعنی ثلاثا لفظ سره واقع کیږي نه په انت طالق سره که نه نو بیا ثلاثا ویل لغوه کیږي، نو کله چې طلاق په عدد سره واقع کیږي نو انت طالق واحدة اولا کې په انت طالق سره طلاق نه واقع کیږي په واحدة واقع کیږي مګر دا ولا په وجه شک پیدا شو لهذ په دي سره هم طلاق نه واقع کیږي.

په وروستنیو دوو صورتونو کې بالاتفاق طلاق نه واقع کیږي ولی قاعده داده چې که لفظ دمع له مصدر سره ذکر شو نو هغه دبعد په معنی سره وي لهذا انت طالق مع موتی دانت طالق بعد موتی په معنی دی نو په وروستنیو دوو صورتونو کې بالاتفاق طلاق په دي وجه نه واقع کیږي چې دي کې طلاق داسې حالت ته

منسوب کړل شوی دی کوم چې له طلاق سره منافي دی یعنی دزوج اووجه دمرګ طرف ته منسوب کړل شوی دی، اودزوج مرګ له اهلیت طلاق سره منافي دی او دزوجه مرګ له محلیت طلاق سره منافي دی حال دا چې دوقوع طلاق لپاره دزوج اهلیت اودزوجه محلیت طلاق لازم دی.

(۴۸)که خاوند دخپلې منکوحه (کومه چې دبل کس مینځه وي) مالک شو یا دهغې دیوجزء مالک شو، یا ښځه دخپل خاوند (کوم چې دبل کس غلام وي) مالکه شوه یادده دیوجزء مالکه شوه نوپه دي دواړوصورتونوکې ددوئ ترمنځ عقدنکاح باطلیږي یعنی په داورکې بغیرطلاق فرقت واقع کیږي ولی چې دملک نکاح اوملک یمین په منځ کې منافات دی لهذا دملک یمین په راتلوسره ملک نکاح ختمیږي ولی چې که ښځه دخپل خاوند مالکه شي نودمالکیت اومملوکیت اجتماع راځي ولی چې دملک نکاح په وجه ښځه مملوکه ده اودملک رقبه په وجه مالکه ده اوپه مالکیت اومملوکیت کې منافات دی لهذا ددوئ ترمنځ به نکاح ختمیږي .اوکه خاوند دخپلې ښځې مالک شونوځرنګه چې ملک نکاح ضرورة دی ځکه چې ملک نکاح پرازاده ښځه ثابتیږي اوپرازادې ښځې باندې ملک ثابتول خلاف قیاس دی اوکوم شئ چې خلاف قیاس ثابت وي هغه ضرورة ثابت وي نوکله چې خاوندلره ملک رقبه ثابت شوکوم چې قوی دی نوملک نکاح کوم چې دضرورت پربناء ثابت شوی وو دهغه ضرورت پاتې نه شولهذا داختمیږي.

(۴۴)نوکه خاوندخپله ښځه واخیسته بیایې طلاق ورکړنوطلاق نه واقع کیږي ولی چې وقوع طلاق مقتضی ده ددې چې اول به خاوندا وښځه په نکاح کې وي بیابه طلاق واقع کیږي حال دا چې په مذکوره صورت کې نکاح دملک رقبه دثابتیدلوپه وجه پاتې نه شولهذا طلاق هم نه واقع کیږي.

(۵۰)أَنتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ مع عِتْقِ مَوْلَاكِ إِيَّاكِ فَأَعْتَقَ لَهُ الرَّجْعَةُ (۵۱)وَلَوْ تَعَلَّقَ عِتْقُهَا وَطَلْقَتَاهَا بِمَجِيءِ الْغَدِ فَجَاءَ لَا وَعِدَّتُهَا ثَلَاثُ حِيَضٍ (۵۲)أَنتِ طَالِقٌ هَكَذَا وَأَشَارَ بِثَلَاثِ أَصَابِعَ فَهِيَ ثَلَاثٌ

**ترجمه** :ته په دوه طلاقه طلاقه یې ستادمولی تالره له ازادولوسره نومولی ازا ده کړه نوخاوندلره رجوع جائزده، اوکه یې معلق کړددې ازادي اوطلاق په صباپورې نوصباراغی نورجوع نشي کولی اوددې عدت درې حیضه دی ،ته دې طلاقه یې دومره ،اوپه دریوګوتوسره یې اشاره وکړه نودادرې طلاقه شمارل کیږي.

**تشریح** :(۵۰)که خاوندخپلې ښځې (کومه چې دبل مینځه وي )ته وویل ،ته طلاقه یې په دوه طلاقه ستادمولی تالره له ازادولووروسته ،بیامولی داازاده کړه نوهغه په دې دووطلاقوسره مغلظه نه ګرځي بلکه اوس هم خاوندته درجوع کولوحق شته ولی چې خاونددادوطلاقه په شرط یعنی دمولی له طرفه ددې ترازادولوپورې معلق کړي دي اومعلق بالشرط دشرط له موجودیدلوځخه وروسته ثابتیږي لهذا داطلاقونه به له ازدیدلوځخه وروسته واقع کیږي اوله ازدادې وروسته ځرنګه چې داحره ده لهذاپه دووطلاقوسره مغلظه نه ګرځي .نوکله چې مغلظه نه ده نوخاوندلره به درجوع کولوحق حاصل وي ،هوکه دامینځه وای نوبیا شکه به په دووطلاقوسره مغلظه شوي وای.

**ف**:سوال دادی چې دمع لفظ خودمقارنت په معنی دی حال داچې تاپې معنی په بعدسره کړې ده ؟ځواب دادی چې دمع لفظ دبعدپه معنی هم مستعملیږي کماقال الله تعالی ﴿فان مع العسر يسرا﴾ ای بعد العسر يسرا، دامعنی یې

ځکه ده چې په عسر او یسر کې تضاد دی په یوه وخت کې دواړه نشي جمع کیدای ،نو دلته هم مع د بعد په معنی دی.

(۵۱)او که مولی د مینځې ازادي او خاوند دي دوه طلاقه په ضباپوري معلق کړل مثلاً مولی وویل اذا جاء غد فانت حرة ،او خاوند وویل اذا جاء غد فانت طالق ،نو د صبا په راتلو سره دا ازادیږي هم او طلاقیږي هم ،او د شیخینو په نزد خاوندلره د رجوع حق هم نشته ولې چې عتق او طلاق دواړه په یوه شرط پوري معلق دي لهذا دواړو وقوع به معاوي ،نو طلاق ځرنګه چې له ازادي څخه وروسته نه دی لهذا په دوو طلاقو سره مغلظه کیږي نو په همدي وجه به خاوندلره درجوع حق حاصل نه وي ،لیکن باتفاق ائمه ثلاثه به دا ښځه احتیاطاً عدت دري حیضه تیروي.

(۵۲)قوله انت طالق هکذاالخ ای لوقال الزوج لامرأته انت طالق هکذاالخ ،یعني که خاوندخپلې ښځې ته دریو ګوتو په وربنکاره کولو سره وویل ته طلاقه په دومره ،نو دا په دري طلاقه طلاقه کیږي ځکه په ګوتو سره اشاره کول چې کله له عدد مبهم سره مقترن وي نو دا شرعاً او عرفاً د علم بالعدد فائده ورکوي یعنی په څومره ګوتو سره چې یې اشاره کړي ده هغومره عدد به مراد وي لهذا د دریو ګوتو په اشاره سره به دري طلاقه واقع کیږي.

ف:بیا د طلاق په عدد کې د خلاصو ګوتو اعتبار دی او که چا په بندو ګوتو سره د اشارې نیت کړی وي نو دیانةً خودده تصدیق کیږي مګر قضاء به دده تصدیق نه کیږي لکه ځرنګه چې دورغوې حکم دی کمافی شرح التنویر:(وتعتبر المنشورة)لاالمضمومة الادیانة ککف،قال ابن عابدین :(قوله ککف)یعنی اذانوی الکف صدق دیانة وو قعت علیه واحدة لان الکف واحدة(الدر المختار مع الشامیة:۲/۳۸۵)

(۵۳)أَنتِ طَالِقٌ بَائِنٌ أَو أَلْبَتَّةَ أَو أَفْحَشَ الطَّلَاقِ (۵۴)أَو طَلَاقَ الشَّيْطَانِ أَو الْبِدْعَةِ أَو كَالْجَبَلِ أَو أَشَدَّ الطَّلَاقِ أَو كَأَلْفٍ أَو مِلْءَ الْبَيْتِ أَو تَطْلِيقَةً شَدِيدَةً أَو طَوِيلَةً أَو عَرِيضَةً فَهِيَ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ إِن لَم يَنوِ ثَلَاثًا

ترجمه :ته طلاق یې بائن یا ته طلاقه یې بته یا فحش طلاق ،یا طلاق شیطان یا بدعت طلاق یا د غره په شان طلاق یا سخت طلاق یا د زرو په شان طلاق یا په ډک کور یا شدید طلاق یا طویل طلاق یا پلن طلاق نو دا یو طلاق بائن دی که نیت و نه کړي د دریو.

تشریح :(۵۳)قوله انت طالق بائن ای لوقال الزوج لامرأته انت طالق بائن الخ ،یعني که خاوند طلاق په یو زائد وصف سره متصف کړه نو دا به طلاق بائن وي مثلاً وي ویل انت طالق بائن یا یې ویل انت طالق البته (ته په بائن طلاق طلاقه یې )په دي مثالونو کې بائن په دي وجه واقع کیږي چې په دي کې خاوند طلاق په زائد وصف سره متصف کړی دی د کوم چې لفظ طلاق احتمال هم لري یعنی ده طلاق په داسې شي (یعنی بینونت )سره متصف کړی دی د کوم چې لفظ طلاق (انت طالق) احتمال لري ځکه چې قبل الدخول په انت طالق سره بائن طلاق واقع کیږي همداشان بعد الدخول په انت طالق ویلو سره له عدت تیریدلو څخه وروسته طلاق بائن واقع کیږي نو لفظ بائن یا البته له دوو احتمالو څخه د یوه تعین وکړ یعنی د بائن والی ځکه نو په دي سره بائن طلاق واقع کیږي .همداشان که خاوند وویل انت طالق افحش الطلاق (ته په فحش طلاق طلاقه یې) نو هم

بائن طلاق واقع کيږي ولی چې طلاق به دي وصف سره دده داثرپه اعتبارسره متصف کړل شوی دی اوهغه فی الحال بائن والی دی لهذا په دي سره فی الحال بائن طلاق واقع کيږي .

(۵۴)قوله اوطلاق الشيطان ای لوقال الزوج لامرأته انت طالق طلاق الشيطان ،يعنی خاوندښځي ته وويل انت طالق طلاق الشيطان اوطلاق البدعة (ته طلاقه يې دشيطان په طلاق ياته طلاقه يې په بدعت طلاق )نوهم طلاق بائن واقع کيږي ولی چې طلاق رجعی خوسنی دی لهذاطلاق شيطان ياطلاق بدعت به بائن وي همداشان که خاوندوويل انت طالق کالجبل (ته دي دغرپه څيرپه طلاق طلاقه يې)نوهم طلاق بائن واقع کيږي ولی چې له غره سره په تشبيه ورکولوزيادت ثابتيږي بيا دزيادت دوه صورته دي ، من حيث العدداومن حيث الوصف ،من حيث العددزيادت خونشي کيدای څکه چې په غره کې تعددنشته لهذازيادت من حيث الوصف مراددی اومن حيث الوصف زيادت په طلاق بائن کې دی لهذطلاق بائن واقع کيږي ،همداشان که خاوندوويل انت طالق اشدالطلاق اوکالف اوملأالبيت اوتطليقة شديدة (ته طلاقه يې په سخت طلاق يادکور ډکولوپه برابرپه طلاق ياپه اشدطلاق ياپه اوږده طلاق ياپه پلن طلاق )نوپه دي ټولومثالونوکې هم طلاق بائن واقع کيږي ولی چې په اولنيودوصورتونوکې له تشبيه څخه کله په قوت کې زيادت مرادوي مثلاويل کيږي هوالف رجل (هغه زرسړيه دی )يعنی هغه دزروکسانوطاقت لري اوکله له دي تشبيه څخه مرادعددوي لهذدداړونيت کول صحيح دی اودنيت دعدم په وخت کې به اقل ثابتيږي .اودتطليقة شديدة دويلوپه وخت کې څکه طلاق بائن واقع کيږي چې شديدهغه دی دکوم چې تدارک ناممکن وي اوطلاق بائن همداشان دی .اولفظ طول اوعرض هم په هغه ځای کې مستعمليږي چيرته چې تدارک مشکل وي نوطلاق بائن هم څرنګه چې مشکل دی په دي وجه په دي الفاظوسره هم طلاق بائن واقع کيږي.په مذکوره بالاصورتونوکې به طلاق بائن هغه وخت وي چې خاونددريو طلاقونيت نه وي کړی اوکه خاونددريو طلاقو نيت کړی وي نودري طلاقه واقع کيږي ولی چې بينونت پردوه قسمه دی غليظه ،خفيفه ،نوکله چې ده ددريوطلاقونيت وکړنوګوياله دواړوڅخه يې دغليظه نيت وکړولی چې دري طلاقه بينونت غليظه دی اوطلاق بائن مغلظ دخاونددکلام محتمل هم دی اودکلام دمحتمل نيت کول صحيح هم دی ،اوکه خاوندهيڅ نيت نه وو کړی نوادنی يعنی يوطلاق بائن به ثابتيږي ولی چې ادنی متيقن دی.

## فصل في الطّلاق قبل الدُّخول

دافصل دطلاق قبل الدخول په بيان کې دی

څرنګه چې نکاح ددخول لپاره کيږي له دخول څخه وړاندي دطلاق لپاره نه کيږي په دي وجه له دخول څخه وروسته طلاق ورکول دضرورت په بناء اصل دی اوله دخول څخه وړاندي طلاق ورکول خلاف اصل دی څکه نومصنف اصل يعنی طلاق بعدالدخول له دي څخه وړاندي بيان کړاوخلاف اصل يعنی طلاق قبل الدخول اوس بيانوي .

(۵۵) طَلَّقَ غَيْرَ الْمَوْطُوءَةِ ثَلَاثًا وَقَعْنَ (۵۶) وَإِنْ فَرَّقَ بَانَتْ بِوَاحِدَةٍ (۵۷) وَلَوْ مَاتَتْ بَعْدَ الْإِيقَاعِ قَبْلَ الْعَدَدِ لَغَا (۵۸) وَلَوْ قَالَ أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً أَوْ قَبْلَ وَاحِدَةٍ أَوْ بَعْدَهَا وَاحِدَةٌ تَقَعُ وَاحِدَةٌ (۵۹) وَفِي بَعْدَ وَاحِدَةٍ أَوْ قَبْلَهَا وَاحِدَةٌ أَوْ مَعَ وَاحِدَةٍ أَوْ مَعَهَا ثِنْتَانِ (۶۰) إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً فَدَخَلَتْ تَقَعُ وَاحِدَةٌ (۶۱) وَإِنْ أَخَّرَ الشَّرْطَ فَثِنْتَانِ

**ترجمه**: طلاق ورکړ خاوند غیر موطوءه ښځې ته دري طلاقه نو دری واړه واقع کیږي ،او که یې متفرق ورکړل نو بائنه کرځي په یوه سره ،او که مړه شوه له ایقاع طلاق څخه وروسته او له عدد ذکر کولو څخه وړاندي نو لغوه کیږي ،او که یې وویل ته طلاقه یې په یوه اویوه یاله یوه څخه وړاندي یاله یوه څخه وروسته نو یوو اقع کیږي ،او (د خاوند په دي د ول ویل ته طلاقه یې) په یوه له یوه څخه وروسته یاله کوم څخه چې وړاندي یووي یاله کوم سره چې یووي (ها ضمیر څخه بغیر او له هاء ضمیر سره یو ځای) دوه واقع کیږي ،که ته کورته داخله شې نو ته طلاقه یې په یوه او یوه نو داخله شوه نو یوو اقع کیږي، او که یې مؤخر کړ شرط نو دوه واقع کیږي .

**تشریح**: (۵۵) که چاچیلې ښځې ته له دخول څخه وړاندي دري طلاقه ورکړل مثلاوي ویل ،انت طالق ثلثا (ته دي په دري طلاقه طلاقه یې) نو دري واړه طلاقه واقع کیږي ولی چې وقوع طلاق په مذکوره جمله کې حقیقة په مصدر محذوف سره ده او داعدد د هغه مصدر محذوف صفت واقع شوی دی نو د انت طالق ثلثا معنی داده چې انت طالق طلاقا ثلثا نو په انت طالق سره علیحده طلاق نه واقع کیږي بلکه په طلاقا ثلاثا سره یو ځای دري طلاقه واقع کیږي .

(۵۶) که دري طلاقه متفرق کړل مثلاوي ویل انت طالق ،انت طالق ،انت طالق نو په اولنی لفظ طلاق سره ښځه بائنه کرځي او پر ښځه دغیر مدخول بها والی په وجه عدت نشته نو د خاوند دوهم او دریم محل طالق طالق د ویلو پر وخت ښځه اجنبیه شوي ده په دي وجه دوهم او دریم طلاق نه واقع کیږي .

ف: لیکن پورته ذکر شوی حکم هغه وخت دي چې خاوند خپل کلام په اخر کې شرط یا استثناء وغیره داسې کوم لفظ ذکر نه کړي چې هغه د کلام ابتداء مغیره کړي او که په اخر کلام کې داسې شرط ذکر کړ چې هغه اول کلام مغیر کاوونو بیا د وجود شرط په وخت کې دري واړه طلاقه واقع کیږي مثلاً خاوند وویل انت طالق، انت طالق، انت طالق ان دخلت الدار نو د دخول دار څخه وروسته دري واړه طلاقه واقع کیږي .

(۵۷) که خاوند اراده وکړه چې خپلې ښځې ته وو ایې انت طالق ثلاثا یا خاوند انت طالق وو ایو تر او سه یې عدد (یعنی ثلاثا) نه وو ذکر کړی چې ښځه وفات شوه نو د خاوند دا کلام لغوه دی په دي سره طلاق نه واقع کیږي ولی چې طلاق په عدد سره واقع کیږي او له عدد ذکر کولو څخه وړاندي ښځه وفات شوه نو محل طلاق پاتې نه شوه لهذا طلاق نه واقع کیږي. ددي مسئلې که څه هم له غیر مدخول بها سره تعلق نشته مګر په دي اعتبار سره له تیر شوي مسئلې سره مناسبت لري چې په تیره شوي مسئله کې هم د دوهم او دریم طلاق د واقع کولو پر وخت محل طلاق فوت کیږي او په دي کې هم د ایقاع طلاق پر وخت محل طلاق فوت کیږي .

(۵۸) که خاوند خپلې ښځې ته وویل ،انت طالق واحدة وواحدة (ته طلاقه یې په یوه طلاق او په یوه) یا یې وویل انت طالق واحدة قبل واحدة (ته دي طلاقه یې په یو طلاق وړاندي تر یوه طلاق) یا یې وویل انت طالق واحدة بعدها واحدة (ته طلاقه یې په یوه طلاق چې له هغه وروسته یو طلاق دی) نو په دي دري واړه

صورتونوکې یوطلاق واقع کیږي ولې چې ښځه دغیر مدخول بهاوالې په وجه له یوه طلاق واقع کیدلوڅخه وروسته بائنه شوه لهذااوس دمحل طلاق دنه وجودپه سبب دوهم طلاق نه واقع کیږي.

ف:دراتلونکې مسئلې دزده کولولپاره دوه اصول یادساتل ضروري دي /نمبر۱.ظرف یعنې قبل اوبعدچې کله ددوو شیانوپه منځ کې واقع وي اوپه هاء ضمیرسره مقیدوي نوظرف به دمابعدلپاره صفت وي اوکه په هاء ضمیرسره مقید نه وو نودخپل ماقبل لپاره به صفت وي .اوله صفت څخه مرادصفت معنوی دی نحوی نه دی لکه جاءنی زیدقبله عمرو یعنی عمروړاندې راغلی وو اوزیدوروسته ،ولې چې قبل دعمرصفت دی ،اوجاءنی زیدقبل عمرو،یعنی زید وړاندې راغلی وو اوعمروروسته ،ولې چې په دې صورت کې قبل دزیدصفت دی. /نمبر۲.دماضی طرف په منسوبولو سره که طلاق واقع کړای شي نوهغه به په زمانه حال کې واقع کیږي نه په ماضی کې.

(۵۹)قوله ولی بعدواحدة اوقبلهاواحدة الخ ای لوقال الزوج انت طالق واحدة بعدواحدة اوقبلهاواحدة الخ تقع فی هذه الصورطلقتان، یعنی که خاوندخپلې غیرمدخول بهاښځې ته وویل انت طالق واحدة بعدواحدة یعنی ته طلاقه یې په یوه طلاقه وروسته له یوه څخه ،په دې صورت کې لفظ بعددماقبل صفت دی داکلام تقاضاکوي ددې چې واحدة ثانیه به په ماضی کې واقع وي اواولې به په حال کې اوپه ماضی کې طلاق واقع کول په حال کې واقع کول دی لهذادادواړه طلاقه به په حال کې یوځای واقع کیږي لهذاپه دې صورت کې دوه طلاقه واقع کیږي ،اوکه خاوندوویل انت طالق واحدة قبلهاواحدة په دې صورت کې قبل دمابعدصفت دی یعنی ته طلاقه یې په یوطلاق له هغه څخه وړاندې په یوه طلاق ،داکلام ددې تقاضاکوي چې واحدة ثانیه به په ماضی کې واقع وي اواولې په حال کې اوڅرنګه چې په ماضی کې طلاق واقع کول په حال کې واقع کول دي لهذادواړه طلاقه به په حال کې یوځای واقع کیږي لهذپه دې صورت کې به هم دوه طلاقه واقع کیږي، داخیرنیو دوصورتونووجه داده چې کلمه مع داقتران اواتصال لپاره راځي خواه که له ضمیرسره مقترن وي اوکه نه وي لهذاپه دې دواړه صورتونوکې هم دوه طلاقه یوځای واقع کیږي.

(۶۰)قوله ان دخلت فانت طالق واحدة وواحدة ای لوقال الزوج لامراته ان دخلت الدارفانت طالق واحدة وواحدة ،یعنی که متعددطلاقونه په شرط پورې معلق کړل شول اویوپه هغه بل په واوسره عطف کړای شونوددې دوه صورتونه دي شرط به مقدم وي یابه مؤخروي ،که شرط مقدم وو مثلاًخاوندخپلې ښځې ته وویل ان دخلت الدارفانت طالق واحدة وواحدة (که ته کورته داخله شوې نوته دې طلاقه یې په یوه طلاق اوپه یوه طلاق )بیاهغه کورته داخله شوه نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدیوطلاق واقع کیږي ولې چې واودمطلق جمع لپاره دی اومطلقاجمع داتصال اوترتیب دواړواحتمال لري نوکه داتصال دمعنی رعایت وکړل شي نودوه واقع کیږي اوکه دترتیب دمعنی رعایت وکړل شي نویوواقع کیږي لکه څرنګه چې په انت طالق واحدة وواحدة منجزکې صرف یوواقع کیږي نومعلومه شوه چې له یوه څخه په زائدکې شک دی اودشک په وجه طلاق نه واقع کیږي په دې وجه له یوه څخه زائدنه واقع کیږي.

ف: دصاحبينو په نزد په دې صورت کې دوه طلاقه واقع کېږي ولې چې واو مطلقا د جمع لپاره راځي لهذا دواړه طلاقه واقع کېږي ولې چې حرف واو د مطلق جمع لپاره راځي لهذا دواړه طلاقه یو ځای معلق کېږي او یو ځای واقع کېږي. همدارنګ څرنګه چې دشرط دمؤخرکولو په صورت کې دوه طلاقه واقع کېږي همداشان دتقديم په صورت کې هم دوه طلاقه واقع کېږي. صاحبين رحمهما الله تعالى دشرط دتقديم صورت دشرط دتاخير پرصورت قياسوي، ليکن داقياس صحيح نه دى ولې چې دتاخير په صورت کې شرط دکلام اول مغيرکوي لهذا اول کلام په شرط پورې موقوف پاتې کېږي نوله وجود شرط څخه وروسته دواړه طلاقه واقع کېږي او دتقديم په صورت کې داول کلام مغيرکونکې شئ موجود نه دى نو اول کلام به په اخر کلام پورې موقوف هم نه وي په دې وجه دواړه طلاقونه على الترتيب واقع کېږي او ښځه څرنګه چې غيرمدخول بهاده ځکه هغه په واحدة اولى سره بائنه ګرځي او ثانيه نه واقع کېږي.

ف: دصاحبينو قول راجح دى كمافي شرح التنوير: (و) تقع (واحدة ان قدم الشرط) لان المعلق كالمنجز: قال ابن عابدين (قوله وتقع واحدة ان قدم الشرط) هذا عنده وعندهما ثنتان ايضا ورجحه الكمال واقره في البحر (الدر المختار مع الشامية: ۲/ ۲۹۶)

(۶۱) قوله وان اخر الشرط فثنتان اى لو اخر الشرط بأن قال انت طالق واحدة وواحدة ان دخلت الدار فالواقع في هذه الصورة طلقتان

،يعنى که شرط مؤخرو مثلا خاوند خپلې ښځې ته وويل انت طالق واحدة وواحدة ان دخلت الدار (ته دې طلاقه يې په يو طلاق او په يو طلاق که ته کورته داخله شوې) نو بالاتفاق دوه طلاقه واقع کېږي ولې چې شروع کلام په اخرکلام يعنى شرط پورې موقوف ده نوله وجود شرط وروسته دواړه طلاقه يو ځاى واقع کېږي څرنګه چې په دواړو کې څه ترتيب نشته چې غير مدخول بها په اول طلاق سره بائنه شي او دوهم لغوه وي.

## باب الكنايات

ذاباب دكناياتو په بيان کې دى

كنايات، دكناية جمع ده کنى يكنو يا كنى يكنى مصدر دى. كنايه هغه ده چې دهغه مراد بغير له نيت څخه ظاهر نه وي او په اصطلاح کې كنايه هغه ته ويل کېږي چې معين شئ په کوم داسې لفظ سره تعبير کړاى شي چې دهغه دلالت پر ده صريح نه وي، په باب دطلاق کې كنايه هغه ده کوم چې دطلاق احتمال لري او په طلاق کې صريح نه وي.

کله چې مصنف ﷫ دصريح له احكامو څخه فارغ شو نو دكناياتو بيان يې شروع کړ، او صريح يې ځکه مقدم ذکرکړ چې په کلام کې اصل صريح دى ولې چې کلام دپوهولو لپاره وضع شوى دى نو دکوم قسم کلام چې په دې مقصد کې ډير دخل وي هغه اصل دى لهذا صريح اصل دى او اصل په نسبت د غيراصل ته دمقدم ذکرکولو ډيرحقدار دى.

(۶۲) لا تطلق بها الا بنية او دلالة الحال (۶۳) فتطلق واحدة رجعية في اعتدي واستبرئي رحمك وانت واحدة (۶۴) وفي غيرها بائنة وان نوى ثنتين وتصح نية الثلاث (۶۵) وهي بائن بتة بتلة حرام خلية برية خبلك على غاربك الحقي باهلك وهبتك لاهلك سرحتك فارقتك امرك بيدك اختاري انت حرة تقنعي تخمري استتري اغربي اخرجي اذهبي قومي ابتغي الازواج

ترجمه :طلاق نه واقع کیږي په کنایاتو مګر په نیت سره یا په دلالت حال سره ،او یو طلاق رجعی واقع کیږي په دي الفاظو سره ته عدت تیر کړه او ته خپل رحم پاک کړه او ته یوا ځې یې ،او له دي څخه په علاوه بائن واقع کیږي که څه هم دوو نیت وکړي او صحیح دی دد ریو نیت کول ،او هغه الفاظ دا دي ،ته بائنه یې ،ته بته یې ،ته بتله یې ،ته حرامه یې ،ته خالي یې ،ته بری یې ،ستا رسی ستا په اوږو ده ،له خپل اهل سره یو ځای شه ،ما ته هبه کړي ستا اهل ته ،ما ته پرېښې یې ،ما ته جدا کړي یې ، ستا معامله ستا په لاس ده ،ته خپل ځان اختیار کړه ،ته ازاده یې ،ته پړونی پر سر کړه ،ته څادر پر سر کړه ،ته پرده وکړه ،لیري شه ،ووځه ،ولاړه شه ،خاوند تلاش کړه .

**تشریح** :(۶۲)دالفاظ طلاق دوهم قسم کنایات دي کنایه هغه ده چې دهغه مراد مستتر او مخفی وي ، او په کنایه سره طلاق نه واقع کیږي مګر دا چې دطلاق نیت موجود شي یا د نیت قائم مقام دلالت حال (مثلا مذاکره طلاق ،یا غضب )وغیره موجود شي ولی چې الفاظ کنایه صرف دطلاق لپاره نه دي وضع شوي بلکه دطلاق او غیر طلاق دواړو احتمال لري لهذا دکومې یوې معنی دمتعین کولو لپاره ضروري ده چې نیت یا دلالت حال موجود شي .

**ف**:دمصنف ﷫ له عبارت څخه په ظاهر کې دا معلومیږي چې دکنایاتو په ټولو الفاظو سره ددلالت حال پروخت مطلقا طلاق واقع کیږي حال دا چې داسې نه ده ،ولی چې احوال دري دي (۱)عام درضامندي حالت (۲)حالت مذاکره طلاق یعنی له خاوند څخه دښځې دطلاق مطالبه کیږي (۳)دغضب حالت یعنی دزوجینو ترمنځ په غصه کې خبري شروع وي .او الفاظ کنایات هم پر دي دوله دي ،(۱)هغه چې صرف ځواب کیدای شي رد او سب او شتم نشي کیدای دا دري لفظونه دي یعنی امرک بیدک ،اختاری، اعتدي،(۲)هغه چې ځواب هم کیدای شي او سب او شتم هم البته رد احتمال نه لري دا پنځه لفظونه دي یعنی خلیة ،بریة ،بتة ،بائن ،حرام ،(۳)هغه چې دځواب او رد دواړو احتمال لري یعنی له خاوند څخه دښځې دطلاق دمطالبې ځواب هم کیدای شي او رد هم کیدای شي البته سب او شتم نه شي کیدای دا پنځه لفظونه دي یعنی اخرجی، واغربی ،اذهبی ،قومی ،تقنعی ،اوددي مرادف الفاظ ،نودعام رضا په حالت کې له مذکوره بالا دریو قسمو لفظونو څخه یو لفظ هم طلاق نه دی ولی چې ټول لفظونه دطلاق او غیر طلاق دواړو احتمال لري لهذا په نیت سره به طلاق یا عدم طلاق متعین کیږي او په عدم نیت کې به دخاوند قول مع الیمین معتبروي .او دمذاکره طلاق په حالت کې قضاءً په هر هغه لفظ سره طلاق واقع کیږي کوم چې درد احتمال نه لري او دا اول او دوهم قسم الفاظ دي ،په دي صورت کې که قائل دعدم نیت دعوه کوي نو دده تصدیق به نه کیږي .او په حالت دغضب کې په هر هغه لفظ سره طلاق واقع کیږي کوم چې دسب او شتم او رد احتمال نه لري دا اول قسم الفاظ دي ،البته په داسې الفاظو سره طلاق نه واقع کیږي کوم چې دسب ،شتم او رد احتمال لری او دا دوهم او دریم قسم الفاظ دي .

(۶۳)یعنی الفاظ کنایه پر دوه قسمه دي .یو هغه چې په هغو سره یو طلاق رجعی واقع کیږي او دوهم قسم هغه چې په هغو سره یو طلاق بائن واقع کیږي .داول قسم دري لفظونه دي یعنی اعتدی (ته

عدت تیرکړه )استبرئی رحمک (ته خپل رحم پاک کړه )انت واحدة (ته یوائحې یې )،په دې دریو کې هریوه لره دوه دوه معنی ګانې دي داعتدی یو معنی ده ته خپلې دعدت ورځې شمار کړه او دوهمه معنی یې ده چې ته دالله تعالی نعمتونه شمار کړه ،نوکه خاوند داولی معنی نیت کړی وي نو دده په نیت سره اوله معنی متعینه کیږي اودامعنی دطلاق دمقدم والی تقاضاکوي ولې چې دعدت دتیرولو حکم کول بغیرله طلاق څخه صحیح نه دی لهذاطلاق به سابقامقدرګڼل ضروري دی ګویاخاوندوویل طلقتک اوانت طالق فاعتدی (ماتاته طلاق درکړی دی یاته طلاقه یې لهذاته عدت تیرکړه )ځکه نوپه دې وخت کې یوطلاق رجعی واقع کیږي.اوددوهم لفظ یعنی استبرئی رحمک یوه معنی داده چې ته عدت تیرکړه ولې چې له عدت تیرولو څخه مقصوددرحم پاکوالی دی نوګویادعدت مقصودصراحتاذکرکړل شو نواستبرئی رحمک داعتدی په معنی شواودوهمه معنی یې داده چې ته له حیض څخه رحم پاک کړه ترڅوپه مسنونه طریقه سره طلاق درکړل شي په دې صورت کې که یې داولنۍ معنی نیت کړی وي نومعنی اوله متعینه کیږي اودامعنی دطلاق سابق مقتضی ده کمامر.

ددریم لفظ یعنی انت واحدة یوه معنی داده چې واحدة دمصدرمحذوف صفت وګرځول شي یعنی انت تطلیقة واحدة اودوهمه معنی یې داده چې خاونددې صفت کوي اووایې چې ته زماپه نزدیوه دانه یې یاته زماپه قوم کې یوه دانه یې، یعنی ستاپه شان کومه ښځه نشته ،نوکه داولنۍ معنی نیت یې کړی وي نوګویاده انت تطلیقة واحدة وویل اوپه دې کلام سره یورجعی طلاق واقع کیږي لهذاپه انت واحدة سره هم یورجعی طلاق واقع کیږي.

(۶۴)قوله وفی غیرهاانت بائنة ای فی غیرهذه الالفاظ الثلاثة تطلق طلقة واحدة بائنة ،یعنی له پورته ذکرشوي الفاظو څخه علاوه په نورو کنایه لفظونو سره یوطلاق بائن واقع کیږي که یې دیوه نیت کړی وي یایې ددوونیت کړی وي اوکه یې ددریونیت کړی وو نودرې طلاقه واقع کیږي ،په دوئ سره طلاق بائن ځکه واقع کیږي چې داالفاظ صرف له طلاق څخه کنایه نه دي بلکه له طلاق علی وجه البینونة څخه کنایه دي.

په دې الفاظو سره ددوونیت کول صحیح نه دی که خاونددووطلاقو نیت وکړنوهم یوطلاق واقع کیږي البته ددریو طلاقونیت کول صحیح دی وجه یې داده چې بینونة پردوه قسمه دی ،خفیفه (له دریو څخه دلږوطلاقوپه صورت کې)،مغلظه(ددریوطلاقوپه صورت کې )نوځرنګه چې لفظ دداړو احتمال لري لهذادکوم یوه نیت چې وکړي هغه واقع کیږي البته ددوونیت کول صحیح نه دی ولې چې دوه عددمحض دي اومذکوره الفاظ پرعدددلالت نه کوي لهذا ددوو طلاقودنیت په صورت کې به ادنی البینونتین یعنی یوطلاق بائن واقع کیږي.

(۶۵)له مذکوره بالادریو لفظونوماسواباقی الفاظ کنایه دادي مثلادخاونداقول ،انت بائن (ته لماڅخه جدایې )بتة، وبتلة (ددې دواړو الفاظو معنی یوه ده یعنی ستاله ماسره تعلق قطع دی )، انت حرام (ته پرماحرامه یې )،انت خلیة (ته پرېښودل شوي یې )،انت بریة (ته بری یې )،حبلک علی غاربک (ستالګام ستاپراوږودی یعنی ستااختیارستادی )، الحقی باهلک (ته له خپلو قریبانوسره یوځای شه

)،وهبتک لاهلک (ماته ستاقربيانوته هبه کړي يې )،سرحتک (ماته پرېښې يې )،فارقتک (ماته جدا کړې يې )،امرک بيدک (ستامعامله ستاپه لاس کې ده )،اختاري (توخپل ځان اختيار کړه )، انت حرة (ته ازاده يې )،تقنعي (ته پړونی پرسرکړه )،تخمري (ته ځادرپرسرکړه )،استتري (ته پرده وکړه)، اغربي (ته ليرې شه )،اخرجي (ته ووځه )،اذهبي (ته لاړه شه )،قومي (ته ودرېږه )،ابتغي الازواج (ته خاوندان تلاش کړه).

(٦٦)وَلَوْ قَالَ اعْتَدِّي ثَلَاثًا وَنَوَى بِالْأَوَّلِ طَلَاقًا وَبِمَا بَقِيَ حَيْضًا صُدِّقَ (٦٧)وَإِنْ لَمْ يَنْوِ بِمَا بَقِيَ شَيْئًا فَهِيَ ثَلَاثٌ (٦٨)وَتَطْلُقُ بِلَسْتُ لِي بِامْرَأَةٍ أَوْ لَسْتُ لَكَ بِزَوْجٍ إِنْ نَوَى طَلَاقًا (٦٩)وَالصَّرِيحُ يَلْحَقُ الصَّرِيحَ وَالْبَائِنَ وَالْبَائِنُ يَلْحَقُ الصَّرِيحَ لَا الْبَائِنَ (٧٠)إِلَّا إِذَا كَانَ مُعَلَّقًا بِأَنْ قَالَ إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ بَائِنٌ ثُمَّ قَالَ أَنْتِ بَائِنٌ

**ترجمه** :اوکه خاوند دري ځله وويل ،ته عدت تيرکړه اوپه اول سره دطلاق نيت کړی وو اوپه مابقي سره دحيض نو دده تصديق به کيږي ،اوکه په مابقي سره يې هيڅ نيت نه وکړی نو دري طلاقه دي ،اوطلاقيږي که يې وويل چې ته زمابنځه نه يې يازه ستاخاوندنه يم که يې نيت کړی وو په دي سره دطلاق ،اوصريح طلاق يوځای کيږي له صريح اوبائن دواړوسره اوبائن يوځای کيږي له صريح سره نه له بائن سره ،مگردا چې هغه معلق وي مثلاوي ويل که ته داخله شوي کورته نوته بائنه يې بيايې (بلاتعليق) وويل ته بائنه يې .

**تشريح** :(۶۶)که خاوندخپلې ښځې ته داعتدی لفظ دري ځله ووايومثلاوي ويل ،اعتدی ،اعتدی ، اعتدی، اوپه دي دريو الفاظوکې په اول باندي دطلاق نيت اوپرباقي باندي دحيض يعنی عدت تيرولونيت وکړنوقضاء به دده تصديق کيږي ولی چې دخپل کلام دحقيقت نيت کړی دی اوعادت هم همدادی چې خاوندله طلاق ورکولوڅخه وروسته دعدت دتيرلو امرکوي لهذا ظاهرحال ده لره شاهددی.

(۶۷)اوکه خاونددري ځله اعتدی وويل ،په اول ځل يې دطلاق نيت وکړاوپه باقي دوځله داعتدی لفظ دويلوپروخت يې هيڅ نيت نه وکړنودري طلاقه واقع کيږي ولی چې کله ده په اول لفظ سره دطلاق نيت وکړه نواوس داحالت دمذاکره طلاق شولهذادوهم اودريم لفظ دمذاکره طلاق په حالت کې دصدورېږه وجه دطلاق لپاره متعين دی .

(۶۸)اوکه خاوندخپلې ښځې ته وويل ،ته زمابنځه نه يې ،يايې وويل زه ستاخاوندنه يم ،نوکه په دي دووجملوسره يې نيت دطلاق وکړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدطلاق واقع کيږي ،حال داچې دصاحبينوپه نزدطلاق نه واقع کيږي ولی چې دخاوندپه دي قول سره دنکاح نفي ثابتيږي کوم چې درواغ ده نوداداسې شوه لکه خاوندچې خپلې ښځې ته ووايې چې لم اتزوجک ،لهذا په دي سره طلاق نه واقع کيږي .امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې دخاونددا قول له نکاح څخه دانکار اوانشاء طلاق دواړو صلاحيت لري نوکله چې ده دطلاق نيت وکړنوطلاق واقع کيږي ولی چې ده دخپل قول دمحتمل نيت کړی دی .

**ف**:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافي الدرالمختار:لست لک اوزوجک اولست لي امراة الي ان قال طلاق ان نواه خلافالهما،قال ابن عابدين:تحت قوله طلاق ان نواه )لان الجملة تصلح لانشاء الطلاق کماتصلح لانکاره فيتعين الاول بالنية لانه لايقع بدونهااتفاقا(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲/ ۱ ۹ ۴)

(۶۹)اوصريح طلاق له بل صريح اوبائن هريوه طلاق سره يوځای کيږي دطلاقوديوځای والی معنی داده چې له يوه طلاق ورکولوڅخه وروسته بل طلاق ورکول کيدای شي مثلاچاخپلې ښځې ته يوځل

وویل ته طلاقه یې ،نوپه دې سره یوطلاق واقع شوییایې وویل ته طلاقه یې نودادوهم طلاق هم واقع شوولې چې اول صریح دی په کوم سره چې یورجعی طلاق واقع شونوځرنګه چېله طلاق رجعی وروسته هم نکاح باقی ده لهذادوهم طلاق هم واقع کیږي .دالحاق الصریح بالصریح مثال دی .همداشان که یې اول وویل ته بائنه یې یاخاوندله ښځې سره خلع علی المال وکړه نوپه دې سره یوطلاق واقع شوییایې وویل ته په یوطلاق طلاقه یې نواوس دوهم طلاق هم واقع شو لقوله تعالی (فلاجناح فیماافتدت به) (یعنی که زوجینولره داخوف وي چې ضوابط قائم نشوساتلای نوهیڅ ګناه نشته پردواړوپه دې کې چې ښځه بدل ورکړي اوځان خلاص کړي)بیاله دې ځخه وروسته فرمایې (فان طلقهافلاتحل له من بعدحتی تنکح زوجاغیره) (بیاکه یې دریم طلاق ورکړ نواوس حلاله نه ده ده لره داښځه له دې ځخه وروسته ترڅوچې نکاح ونه کړي له کوم خاوندسره له ده ځخه بغیر)،فان طلقها کې فاء دتعقیب مع الوصل لپاره ده لهذادانص ده چې دریم طلاق له خلع ځخه وروسته واقع کیږي.

(۷۰)اوطلاق بائن له صریح سره یوځای کیږي مثلاخاوندپه صریح رجعی طلاق ورکولوسره وویل انت طالق ،بیایې وویل انت بائن نودادوهم طلاق واقع کیږي ولې چې نکاح تراوسه پوره باقی ده .مګرطلاق بائن له بل بائن طلاق سره نه یوځای کیږي مثلاوي ویل انت بائن انت بائن بیابې .وویل انت بائن نوصرف یوطلاق بائن واقع کیږي ولې چې ثانی له اول ځخه خبرجوړول ممکن دي یعنی په دوهم ځل انت بائن ویلوسره ګویاخاوندخبرورکوي چې ماتاته طلاق بائن درکړی دی لهذادادطلاق دانشاء کرځولوځ ضرورت نشته .البته که اول معلق بالشرط وي مثلاخاوندوویل ،ان دخلت الدار فانت طالق،بیایې وویل انت بائن نوپه دې دوهم ځل انت بائن ویلوسره طلاق واقع شواوس داددهمدې طلاق په عدت کې کورته داخله شوه نوپه دې سره په دې دوهم طلاق هم واقع کیږي ولې چې په اول ځل کې تعلیق صحیح دی لهذادوهم ځل انت بائن ویل له اول ځخه خبرجوړول ممکن نه دي اووجودشرط پروخت دامحل طلاق هم ده لهذاطلاق واقع کیږي.

## بَابُ تَفْوِيضِ الطَّلَاقِ

داباب دطلاق دسپارلوپه بیان کې دی

یعنی داباب دخاوندطلاق دواقع کولواختیارکوم بل کس ته دسپارلوپه بیان کې دي خواه که هغه غیرزوجه وي یاوکیل وي .

کله چې مصنف رحمه الله دهغه طلاق له بیان ځخه فارغ شوکوم چې مطلق خپله واقع کوي خواه که هغه صریح وي یاکنائی وي ،نویې دداسې طلاق بیان شروع کړکوم چې دخاوندپه حکم سره کوم بل ځوک واقع کوي .اوځرنګه چې خپله دزوج طلاق واقع کول اصل دي اوپه غیرسره واقع کول خلاف اصل دی ځکه یې داله اصل ځخه وروسته ذکرکړ.بیادتفویض لپاره دریوقسمه الفاظ استعمالیږي ،تخییر، امربالید ،اومشیت ،مصنف رحمه الله ددې دریودتفصیل لپاره په ترتیب سره دري فصل قائم کړي دي ،په دې دریوکې تخییرځکه مقدم کړی دی چې داپه صریح دلیل سره ثابت دی .

(٧١) وَلَوْ قَالَ لَهَا اخْتَارِي يَنْوِي بِهِ الطَّلَاقَ فَاخْتَارَتْ فِي مَجْلِسِهَا بَانَتْ بِوَاحِدَةٍ وَلَمْ تَصِحَّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ (٧٢) فَإِنْ قَامَتْ أَوْ أَخَذَتْ فِي عَمَلٍ آخَرَ بَطَلَ خِيَارُهَا (٧٣) وَذِكْرُ النَّفْسِ أَوِ الاخْتِيَارَةِ فِي أَحَدِ كَلَامَيْهِمَا شَرْطٌ

**ترجمه**: خاوند خپلې ښځې ته وویل اختیار کړه، په دې سره یې د طلاق نیت وکړ نو ښځې اختیار کړ په همدې مجلس کې نو په یوه طلاق سره بائنه کرځي، او د دریو نیت کول صحیح نه دی، او که دا ولاړه شوه یا یې شروع وکړه په کوم بل کار باندې نو باطلیږي د دې اختیار، او د لفظ نفس یا اختیار ذکر له دواړو څخه د یوه په کلام کې شرط دی.

**تشریح**: (٧١) که خاوند خپلې ښځې ته وویل، اختاری نفسک (ته خپل ځان اختیار (غوره) کړه) او خاوند په دې سره د طلاق نیت کړی وو که ښځې خپل ځان اختیار کړ نو دا په یوه طلاق بائنه کیږي په دې شرط چې هغه ښځه په همدې مجلس کې خپل ځان غوره کړي ولې چې د ښځې خپل ځان اختیارول هغه وخت ثابتیږي کله چې له نفس سره د ښځې اختصاص ثابت شي یعنی د خاوند ملک زائل شي او ښځه د خپل نفس مالکه شي ښکاره ده چې دا امر په طلاق بائن سره حاصلیږي. او که خاوند د دریو طلاقو نیت کړی وو نو دري نه واقع کیږي ولې چې اختیار منقسم الی الاقسام نه دی، په خلاف د بینونت چې هغه خفیفه او غلیظه ته منقسم دی لهذا په بینونت سره د دواړو نیت صحیح دی.

**ف**: د قیاس تقاضا خو دا ده چې د اختاری په لفظ سره د نیت طلاق باوجود طلاق واقع نه شي ولې چې خپله خاوند په دې لفظ سره د طلاق د واقع کولو مالک نه دی چنانچه که خاوند وویل اخترک من نفسي نو طلاق نه واقع کیږي او قاعده ده چې د کوم شئ چې انسان په خپله مالک نه وي د هغه بل څوک هم مالک نشي جوړولی، مګر څرنګه چې په دې د امت اجماع ده چې د اختاری په لفظ سره طلاق واقع کیږي لهذا موږ مذکوره قیاس ترک کړ.

(٧٢) که ښځه له دې مجلس څخه ولاړه شوه یا په کوم بل کار مشغوله شوه نو اختیار د دې له لاس څخه ووځي ولې چې ښځې ته د طلاق اختیارورکول په حقیقت کې دا د طلاق مالکه جوړول دي او تملیکات په هغه مجلس کې د جواب تقاضا کوي کما في البیع ولې چې د مجلس ټول ساعتونه بمنزله یو ساعت دي لهذا ښځه په مجلس کې طلاق واقع کولی شي مګر د مجلس له بدلیدلو څخه وروسته دا اختیار باقي نه پاتې کیږي.

(٧٣) د اختاری په لفظ سره د طلاق واقع کولو لپاره له زوجینو څخه د یوه په کلام کې د نفس یا اختیار لفظ ذکر کیدل ضروري دي مثلا خاوند ووایي اختاری نفسک، ښځه ووایي اخترت یا زوج ووایي اختاری ښځه په ځواب کې ووایي اخترت نفسي، چنانچه که خاوند اختاری ووایو او ښځې په ځواب کې اخترت ووایو نو طلاق نه واقع کیږي ولې چې د نفس لفظ له ذکر کیدلو څخه بغیر د خاوند او ښځې دواړو قول مبهم دی د ښځې مبهم قول د خاوند د مبهم قول لپاره تفسیر نشي جوړیدلی ولې چې د ښځې په قول اخترت کې لکه څرنګه چې دا احتمال دی چې دا خپل نفس اختیاروي همدا شان دا احتمال هم شته چې ښځه خپل خاوند اختیاروي نو د شک په وجه طلاق نه واقع کیږي، همدا راز د اختاری بائن طلاق کیدل موږ ته له اجماع څخه معلوم شوی دی او اجماع په دې تفسیر سره وارده ده چې د کوم یوه په کلام کې د نفس لفظ یا کوم بل

داسې لفظ موجودوي کوم چې تفسیرجوړیدلی شي نوځکه چې وارده وي په هغه شان به پاتې کیږي .همدارازکه دښځې په قول کې داختیارة لفظ اضافه وي نوهم په دي سره طلاق واقع کیږي ولی چې داختیارة لفظ په زیاتولوسره دښځې قول مبهم نه پاته کیږي ځکه چې په اختیارة کې تاء دوحدة لپاره ده اوتعدداوتوحداحتمال په طلاق کې شته چې طلاق واحدهم کیدای شي اومتعددهم ،په خلاف دزوج اختیارول ځکه چې هغه دتعدداوتوحداحتمال نه لري ولی چې خاوند
اختیارول دنکاح باقی ساتل دي په کوم کې چې تعددنشته .

(۷۴)وَلَوْ قَالَ لَهَا اخْتَارِي فَقَالَتْ أَنَا أَخْتَارُ نَفْسِي أَوِ اخْتَرْتُ نَفْسِي تَطْلُقُ (۷۵)وَلَوْ قَالَ اخْتَارِي اخْتَارِي اخْتَارِي فَقَالَتْ اخْتَرْتُ الْأُولَى أَوِ الْوُسْطَى أَوِ الْأَخِيرَةَ أَوِ اخْتِيَارَةً وَقَعَ الثَّلَاثُ بِلَا نِيَّةٍ (۷۶)وَلَوْ قَالَتْ طَلَّقْتُ نَفْسِي أَوِ اخْتَرْتُ نَفْسِي بِتَطْلِيقَةٍ بَانَتْ بِوَاحِدَةٍ

**ترجمه** :اوکه خاوند ښځې ته وویل خپل نفس اختیارکړه هغې وویل زه اختیاروم خپل نفس یامااختیارکړاخپل نفس نوطلاق واقع کیږي ،اوکه خاوندښځې ته دري ځله وویل اختیارکړه ،ښځې وویل مااختیارکړاول یامنځنی یااخیري ،یایې وویل مااختیارکړاختیارکول نودري طلاقه واقع کیږي بغیرله نیت څخه ،اوکه ښځې وویل چې ماطلاق ورکړخپل نفس ته یامااختیارکړخپل نفس په یوه طلاق سره نوبائنه ګرځي په یوه طلاق سره .

**تشریح** :(۷۴)که خاوندوویل ته خپل نفس اختیارکړه ښځې وویل انااختارنفسی (زه خپل نفس اختیاروم)یایې وویل اخترت نفسی (ماخپل نفس اختیارکړ)نویوطلاق واقع کیږي ولی چې دښځې دواړه کلامه مفسردي یعنی په دواړوکې دنفس لفظ ذکردی لهذاطلاق واقع کیږي .مګرپه اولنی صورت کې دقیاس تقاضاداده چې طلاق واقع نه شي ولی چې اختارفعل مضارع ده کوم چې محض داختیاروعده ده اوپه وعده اختیارسره طلاق نه واقع کیږي لیکن استحساناد وقوع طلاق حکم شوی دی ولی چې په دی صورت کې په وقع طلاق باندې دصحابه کرامو ﷺ اجماع ده .همدارازحضرت عائشه ﷺ دنبی کریم ﷺ په ځواب کې فرمایلي وو لابل اختارالله ورسوله ،نوسره له دي چې په دي کې لفظ داختارمضارع ده بیاهم نبی کریم ﷺ معتبرکړی وو .

(۵۷)که خاوندخپلې ښځې ته دري ځله وویل اختاری،اختاری،اختاری،(خپل ځان اختیار کړه)ښځې وویل اخترت الاولی اوالوسطی اوالاخیرة (مااولنی یامنځنی یااخیرنی اختیارکړی دی )، نودامام ابوحنیفه ﷫ په نزددخاوندله نیت څخه بغیردری طلاقه واقع کیږي ،اودصاحبینوپه نزددخاوندله نیت څخه بغیریوطلاق واقع کیږي ،دخاونددنیت ضرورت ځکه نشته چې دلته داختاری لفظ تکراردطلاق پرمعنی دلالت کوي ولی کوم اختیارچې مکرروي هغه دطلاق په باره کې وي نودقرینه دوجودپه وجه دخاونددنیت ضرورت نشته .

دامام ابوحنیفه ﷫ دلیل دادی چې دخاوندپه اختیارورکولو سره هغه دریوداسې طلاقومالکه ګرځي کوم چې مجتمع فی الملک دي اومجتمع فی الملک غیرمرتب وي اوهرهغه شئ کوم چې غیرمرتب وي دهغه په باره کې داسې کلام کوم چې دترتیب لپاره وي لغوه دی لهذادښځې قول ، الاولی اوالوسطی اوالاخیرة لغوه دی نواوس صرف دښځې قول اخترت پاتې شوکوم چې دریوطلاقو لپاره ځواب جوړیدلی

شي لهذا دښځې په دي قول سره دري طلاقه واقع کیږي .دصاحبینو دلیل دادی چې دښځې قول الاولی اوالوسطی اوالاخیرة بې شکه دترتیب فائده نه ورکوي مګردافراد فائده خو ضرورورکوي نوویل کیږي چې ښځې له دريو څخه صرف یو طلاق اختیار کړی دی لهذا یو طلاق واقع کیږي .

اوکه ښځې وویل ،اخترت اختیارة (مااختیارکړاختیارکول )نوبالاتفاق دري طلاقه واقع کیږي ولی چې که دي صرف اخترت ویلی وای نودري طلاقه واقع کیدل اوس چې کله دي له اخترت سره تاکیدیعنی اختیارة هم ذکرکونوپه طریقه اولی سره به دري طلاقه واقع کیږي .

ف :داخترت الاولی اولوسطی اوالاخیرة دویلوپه صورت کې دصاحبینو قول راجح دی لمافي الهندية:وان كررقوله اختاری ثم وقوع الثلاث بقولها اخترت الاولی او الوسطی او الاخیرة قول ابی حنیفة رحمه الله وعندهماتطلق واحدة ،قوله وعندهماتطلق واحدة هو المختار كمافي الدر (هنديه: ۱/۳۸۹)

(۷۶)اوکه دخاوند دقول اختاری اختاری اختاری په ځواب کې ښځې وویل طلقت نفسی اواخترت نفسی بتطلیقة (ماځپل نفس ته یو طلاق ورکړیاماځپل نفس په یوه طلاق سره اختیارکړ)نوداپه یوه بائن طلاق سره طلاقیږي ولی چې دخاوندله طرفه تفویض اختیارمؤثردی په کوم سره چې طلاق بائن واقع کیږي اودښځې له طرفه په صریح لفظ سره ایقاع طلاق مؤثرنه ده .صاحب هدایه درجعي طلاق قول کړی دی کوم چې شراحورد کړی دی ولی چې ښځه تصرف کوي دخاوندله طرفه دتفویض طلاق په نتیجه کې ،اودخاوندله طرفه تفویض دبائن طلاق دی ولی چې داتفویض له کنایاتو څخه دی په کوموسره چې طلاق بائن واقع کیږي .

(۷۷)أمرُکَ بیدِکَ فِي تَطْلِیقةٍ او اختاري تَطْلِیقَةً فَاخْتارَتْ نَفْسَها طَلُقَتْ رَجْعِیَّةً

**ترجمه** :(که خاوند وویل )ستامعامله ستاپه لاس کې ده دیوه طلاق په باره کې ،یایې وویل اختیارکړه یو طلاق، نوښځې ځپل نفس اختیارکړنویورجعي طلاق واقع کیږي .

**تشریح** :(۷۷)قوله امرک بیدک فی تطلیقة ای لوقال الزوج لامرأته امرک بیدک الخ ،یعنی که خاوند ځپلې ښځې ته وویل امرک بیدک فی تطلیقة (دیوه طلاق په باره کې ستااختیارستاپه لاس کې ده )یایې وویل اختاری تطلیقة (ته یو طلاق اختیارکړه)ددي په ځواب کې ښځې وویل ماځپل نفس اختیارکړنوپردي یورجعي طلاق واقع کیږي ولی چې خاونددصریح طلاق تفویض کړی دی اوپه صریح طلاق سره جعي طلاق واقع کیږي .

## فَصْلٌ فِي الأَمْرِ بِالْیَدِ

په دي فصل کې مصنف رحمه الله دامربالید تفصیل بیان کړی دی .په امربالیداواختیارکې فرق دادی چې داختیارپه صورت کې ددريو طلاقونیت کول صحیح نه دی حال داچې په امربالید کې صحیح دی .

(۷۸)أمرُکَ بیدِکَ یَنْوِي ثَلاثًا فقالت اخترتُ نَفْسِي بِوَاحِدَةٍ وَقَعْنَ (۷۹)ولي طَلَّقْتُ نَفْسِي وَاحِدَةً او اخترتُ نَفْسِي بِتَطْلِیقَةٍ بَانَتْ بِوَاحِدَةٍ

**ترجمه** : (خاوند وویل )ستامعامله ستاپه لاس کې ده حال داچې ده دريو طلاقونیت کړی دی اوښځې وویل مااختیارکړی دی ځپل نفس په یوه وارسره نودري واړه طلاقه واقع کیږي ،او(که یې وویل )ماځپل نفس ته یو طلاق ورکړی دی یامااختیارکړی دی ځپل نفس په یوه طلاق سره نوبائنه کرځي په یوه طلاق سره .

**تشریح** :(۷۸)قوله امرک بیدک ای لوقال الزوج لامرأته امرک بیدک الخ ،یعنی که خاوند دریوطلاقو په نیت کولوسره ښځې ته وویل امرک بیدک(ستا اختیارستاپه لاس دی )ښځې په ځواب کې وویل اخترت نفسی بواحدة(ماځپل نفس په یووارسره اختیارکړی دی )نودرې طلاقه واقع کیږي ولی چې امربالید دعموم(یعنی دري طلاقه )اودخصوص (یعنی یوطلاق) دواړو احتمال لري زوج دثلاثه په نیت کولوسره له دومحتملو امروڅخه دیوه تعین وکړکوم چې صحیح دی لهذا دري طلاقه واقع کیږي .

(۷۹)قوله ولی طلقت نفسی بواحدة ای فی قولها فی جواب الزوج لماقال لهاامرک بیدک طلقت الخ ،یعنی که زوج وویل امرک بیدک (ستاامرستاپه لاس دی )ښځې په ځواب کې وویل طلقت نفسی بواحدة (ماځپل نفس ته یوطلاق ورکړی دی )یایې وویل اخترت نفسی بتطلیقة (ماځپل نفس په یوه طلاق سره اختیارکړی دی)نوپه دي دواړو صورتونو کې یوبائن طلاق واقع کیږي ،دیوه طلاق دواقع کیدلووجه داده چې په اولنی صورت کې دښځې په قول کې لفظ دواحدة دموصوف مقدرلپاره صفت دی ،ای طلقت نفسی تطلیقة واحدة (ماځپل نفس په یوه طلاق سره طلاق کړی دی )لهذا اطلاق به یووي .اوپه دوهم صورت کې په بتطلیقة کې تاء دوحدة لپاره ده لهذا په دي صورت کې به هم یوطلاق واقع کیږي ،اوپه دواړو صورتونو کې بائن په دي وجه دی چې اعتبار دخاوندله طرف څخه سپارولوته دی نه دښځې ایقاع لره ،او خاوند بائن طلاق سپارلی دی ولی چې دخاوند قول امرک بیدک کنایه دی اوپه کنایې سره بائن طلاق واقع کیږي .

(۸۰)وَلَایَدخُلُ اللَّیلُ فِي أمرِکَ بِیَدِکَ الیَومَ وَبَعدَغَدٍ وَإن رَدَّتِ الأمرَ فِي یَومِهَا بَطَلَ أمرُ ذلکَ الیَومِ وکانَ بِیَدِهَا بَعدَغَدٍ (۸۲)وفِي أمرُکَ بِیَدِکَ الیَومَ وَغَدًا یَدخُلُ وَإن رَدَّت فِي یَومِهَا لَم یَبقَ فِي الغَدِ

**ترجمه** :اوشپه به داخله نه وي په دي ویلو کې چې ستا امرستاپه لاس دی نن اوله صبا څخه وروسته (یعنی صبانه بله ورځ) اوکه ښځې ردکړ اختیاردهمدي ورځې نوباطلیږي دهمدي ورځ اختیار او اختیاردي په لاس کې پاتې کیږي صبانه بله ورځ ،اوپه دي وینا کې چې ستامعامله ستاپه لاس ده نن او صبانو شپه به داخله وي. اوکه یې ردکړ دهمدي ورځ اختیارنوباقي نه پاتې کیږي اختیارپه صبا ورځ کې.

**تشریح** :(۸۰)که خاوند ښځې ته وویل ،امرک بیدک الیوم وبعدغد(نن ستاامرستاپه لاس کې دی اوله صباڅخه وروسته یعنی صبانه بله ورځ ستاامرستاپه لاس کې دی)نودخاوندپه دي وینا کې به شپه داخله نه دي یعنی په شپه کې به ښځه اختیارنه لري ولی چې دیوم لفظ چې کله مفرد ذکروي نوداشپې لره شامل نه وي .اوکه ښځې دنن اختیاررد کړنوصحیح دی ددي دنن اختیارباطلیږي مګرله صباڅخه وروسته یعنی دصبانه بلې ورځې اختیاریې باقي دی ولی چې ده دوه داسې وختونه ذکرکړي دي دکوموپه منځ کې ددوئ له جنس څخه یوداسې وخت شته چې هغه ته امرشامل نه دی نوپه بعدغد ذکرکولوسره داول وخت یعنی الیوم امتداد مرادنه دی نوښځې لره دوه جلا جلا وختونو کې اختیارثابت شولهذا که هغه دیوه وخت اختیاررد کړي نوپه دي سره د دوهم وخت اختیارنه ردیږي .

(۸۱)اوکه خاوندوویل ،امرک بیدک الیوم وغدا(ستاامرستاپه لاس دی نن اوصبا)نوپه دي اختیارکې شپه هم داخله ده لهذا ددي اختیاربه دصباورځې ترلمرلویدوپوري وي ،نوکه ښځې په شپه کې ځپل ځان اختیارکړنوطلاق واقع کیږي ولی چې خاوند الیوم اوغدپه حرف جمع یعنی واوسره جمع کړي دي

او الجمع بحرف الجمع كالجمع بلفظ الجمع وي نو گويا خاوند وويل امرک بيدک يومين ،لهذا دا شپې لره هم شامل دی ،په خلاف د تيرشوي صورت چې په هغه کې د دوو وختونو په منځ کې يو داسې وخت فاصل دی کوم لره چې لفظ امر شامل نه دی نو هغه په امرک بيدک يومين سره تعبيرول صحيح نه دی .او په دې صورت کې كه ښځې دنن ورځې اختيار رد کړ نو د صبا ورځې اختيار هم د دې له لاس ځخه وځې ولی چې په دې صورت کې دا امر واحد دی لهذا په ردولو سره دې لره اختيار باقی نه پاتې کيږي .

**ف**:له امام ابو حنيفه رحمه الله ځخه يو روايت دا دی چې دنن ورځې دامر باليد په ردولو سره په صبا ورځ کې نه رديږي بلكه صبا ورځ خپل ځان اختيارولی شې ولی چې ښځه لكه ځرنګه چې دايقاع طلاق درد ولو قدرت نه لري همدا شان دامر باليد در دولو قدرت هم نه لري يعنی كه خاوند خپلې ښځې ته وويل انت طالق نو پر ښځه په هر صورت طلاق واقع کيږي خواه كه يې داقبول كړي اوكه يې قبول نه كړي ،همدا شان دامرک بيدک دويلو په صورت کې هم ښځې لره امر باليد ثابتيږي كه ځه هم داهغه قبول نه كړي نو كله چې دښځې په ردولو سره امر باليد نه رديږي نو دا خپل نفس اختيارولی شې .

(۸۲)ولو مكثت بعد التفويض يوما او لم تقم او جلست عنه او اتكأت عن القعود او عكست او دعت اباها للمشورة او شهودا للاشهاد او كانت على دابة فوقفت بقي خيارها (۸۳)وان سارت لا و الفلك كالبيت

**ترجمه** :او كه ښځه ځنډو كړله تفويض ځخه وروسته يو ورځ او ولاړه نه شوه يا كښينستله دقيام له حالت ځخه يا يې تكيه وكړه له حالت قعود ځخه يا يې د دې عكس وكړ يا يې راوغوښتی خپل پلار د مشورې لپاره يا يې گواهان د گواه جوړولو لپاره راوغوښتل يا دا په كوم سورلی باندې سوره وه نو ودريدله نو باقی به وي د دې اختيار ،او كه روانه شوه نو نه به وي او كښتی د كور په شان ده .

**تشريح** :(۸۲)كه خاوند ښځې اختيار وركړ يا هغه ښځه ټوله ورځ ناسته پاتې شوه ولاړه نه شوه يا ولاړه وه كښينستله يا ناسته وه او س يې تكيه ولگوله يا يې تكيه لگولې وه اوس سمه كښينستله يا يې دمشورې لپاره خپل پلار راوغوښتی يا يې دگواه جوړولو لپاره گواهان راوغوښتل يا په سورلی باندې سوره وه هغه سورلی ودريده نو په دې ټولو صورتونو كې به د دې اختيار باقی وي ولی چې له دې امورو ځخه يو هم داعراض دليل نه دی چې دا وفهميږي چې دې د زوج له طرفه دې ته وركړل شوی اختيار رد كړ لهذا اوس هم دا خپل ځان ته طلاق وركولی شې.

**ف**:دا په هغه وخت كې ده چې تفويض مطلق وي يعنی په كوم وخت پورې مقيد نه وي او كه تفويض په كوم وخت پورې مقيد وو نو په ولاړيدلو او كښينستلو وغيره سره نه باطليږي بلكه د وخت په تيريدلو سره باطليږي

(۸۳)قوله وان سارت لا ای ان سارت الدابة بعد التفويض لايبقی خيارها،يعنی كه له اختيار وركول كيدلو ځخه وروسته هم د دې سورلی روانه پاتې شوه نو اختيار ختميږي ولی چې د سورلی روانيدل يا دريدل ښځې ته منسوب دي نو گويا ښځه په خپله روانه ده كوم چې داعراض دليل دی او په اعراض سره اختيار باطليږي .

او كښتی د كور په شان ده يعنی كه كښتی روانه شوه نو په دې كې د كور په ځير ښځې ته اختيار باقی پاتې

کېږي هغه دسورلی په شان نه ده چې په رفتارسره اختيارختم شي وجه يې داده چې دکښتۍ رفتارپه کښتۍ کې دسواره طرف ته منسوب نه دی په همدې وجه خوسوردکښتۍ پردرولو قادرنه دی.
ف:له امام ابويوسف رحمه الله څخه روايت دی چې که کښتۍ ولاړه وه اوخاوندښځې ته اختيارورکړ بياکښتۍ روانه شوه نواختيارباطلېږي.

## فَصلٌ فِي الْمَشِيئَةِ

دادغيرپه ذريعه سره دطلاق واقع کولودريم فصل دی په کوم کې چې مصنف رحمه الله دمشيت دلفظ په ذريعه سره داختيارورکولوحکم بيان کړی دی.

(٨۴)وَلَوْ قَالَ لَهَا طَلِّقِي نَفْسَکِ وَلَمْ يَنْوِ اَوْ نَوَى وَاحِدَةً فَطَلَّقَتْ وَقَعَتْ رَجْعِيَّةً (٨۵)وَاِنْ طَلَّقَتْ ثَلَاثًا وَنَوَاهُ وَقَعْنَ (٨٦)وَبِاَبَنْتُ نَفْسِي طَلُقَتْ (٨٧)لَا بِاخْتَرْتُ (٨٨)وَلَا يَمْلِکُ الرُّجُوعَ وَتَقَيَّدَ بِمَجْلِسِهَا اِلَّا اِذَا زَادَ مَتَى شِئْتِ (٨٩)وَلَوْ قَالَ لِرَجُلٍ طَلِّقْ امْرَأَتِي لَمْ يَتَقَيَّدْ بِالْمَجْلِسِ اِلَّا اِذَا زَادَ اِنْ شِئْتَ

**ترجمه**:که خاوندښځې ته وويل خپل نفس ته طلاق ورکړه اوهيڅ نيت يې نه وو کړی يايې ديوه طلاق نيت کړی وو نوښځې طلاق ورکړنو واقع کېږي يوطلاق رجعي ،اوکه دې دري طلاقه ورکړل اوخاونديې نيت کړی وو نودري واقع کېږي او(که يې وويل )ماخپل نفس جلاکړنوطلاق واقع کېږي ،اوطلاق نه واقع کېږي په دې ويلوسره چې ماخپل نفس اختيارکړی دی ،اوخاونددرجوع کولومالک نه پاتې کېږي اواختياردښځې په مجلس پورې مقيد کېږي مګرداچې دمتى شئت لفظ اضافه کړي.

**تشريح**:(٨۴)که دخاونددقول طلقى نفسک (خپل نفس ته طلاق ورکړه )په ځواب کې ښځې خپل ځان ته طلاق ورکړخواه که دخاوندهيڅ نيت نه وي يايې ديوه طلاق نيت کړی وي نويوطلاق واقع کېږي اوهغه به هم رجعي وي ،يوطلاق ځکه واقع کېږي چې دخاونددقول طلقى نفسک معنى افعلى فعل الطلاق ده اوطلاق جنس دی دکوم چې اطلاق پرادنى باندې يقيني وی اوادنى يودی ځکه يوطلاق واقع کېږي،اورجعي ځکه دی چې تفويض دصريح طلاق دی اوپه صريح طلاق سره رجعي طلاق واقع کېږي.

(٨۵)اوکه ښځې ځان ته دري طلاقه ورکړل اوخاوندهم ددې نيت کړی وو نودري طلاقه واقع کېږي ولې چې دطلقى معنى افعلى فعل الطلاق ده اوطلاق مصدراسم جنس دی له کوم څخه چې يو طلاق مرادوي مع احتمال الکل نوکه دکل نيت وو نودري واړه واقع کېږي که نه نويوواقع کېږي.

(٨٦)قوله ولوقال لهاطلقى نفسک فقالت في جوابه ابنت نفسى طلقت رجعية ،يعنى که دخاونددقول طلقى نفسک (ځان ته طلاق ورکړه )په ځواب کې ښځې وويل ابنت نفسي(ماځان ته بائن طلاق ورکړ) نويورجعي طلاق واقع کېږي ولې چې ابانت دطلاق له الفاظوڅخه دی نوپه اصل ايقاع کې ښځه له خاوندسره موافقه ده البته خاوندله عدت څخه وروسته دې لره دابانت صفت ثابتول غواړي ښځې له خاوندڅخه په مخالفت کولوسره په صفت ابانت کې تعجيل وکړلهذا اصل طلاق به واقع کېږي اودابانت صفت لغوه دی.

ف:له امام ابو حنيفه رحمه الله څخه روايت دی چې په مذكوره بالاصورت كې هم طلاق نه واقع كيږي ولی چې خاوندښځې ته دطلاق اختيارورکړی دی اوښځې ابانت واقع کړی دی ښکاره خبره ده چې په طلاق اوابانت كې مغائرت دی نو دښځې كلام دخاوندله كلام سره دنه موافقت په وجه لغوه دی .

(٧٨)قوله لاباخترت ای لاتطلق لوقال لهاطلقی نفسک فاجابت بقولهااخترت ،يعنی كه په مذكوره بالاصورت كې دخاوندپه ځواب كې ښځې وويل اخترت (ماخپل ځان اختيارکړ)نوطلاق نه واقع كيږي ولی چې اختيار دطلاق له الفاظو څخه نه دی، البته دخاوندله طرفه ښځې ته داختيارورکولوپه صورت كې دښځې اخترت ويل بالاجماع طلاق دی ،ليکن دلته خو خاوند اختيارنه دی ورکړی يعنی خاوندښځې ته اختياری نه دی ويلی بلکه طلقی يې ويلی دی لهذادښځې اخترت ويل لغوه دی اوپه دي لغوه كې دمشغوليدوپه وجه امرطلاق هم دښځې له لاس څخه ووتی .

(١٨٨)که خاوندښځې ته وويل طلقی نفسک (ته خپل ځان ته طلاق ورکړه )نو اوس خاوندله خپل دي قول څخه رجوع نه شي كولی ولی چې په دي كې ديمين معنی موجوده ده په دي وجه چې ده طلاق دښځې په طلاق ورکولوپوري معلق کړی دی اويمين تصرف لازم دی له كوم څخه چې درجوع اختيارنه وي .اودزوج له طرفه په تفويض طلاق كې دااختيارترهغه مجلس پوري وي چې په هغه كې دي لره اختيارورکړل شوی دی ولی چې دادتمليكاتوله قبيلې څخه دی اوتمليكات په مجلس پوري مقيدوي .هوكه خاوندپه اختيارورکولوسره وويل طلقی نفسک متی شئت (ته خپل ځان طلاق کړه كله چې وغواړې )يعنی متی شئت لفظ يې اضافه کړنواوس دښځې دااختياربه مجلس پوري مقيدنه دی ولی چې دمتی لفظ دعموم وخت لپاره دی گوياخاوندښځې ته وويل طلقی نفسک فی ای وقت شئت (ته خپل ځان طلاق کړه كله چې هم وغواړې).

(٨٩)که خاوندکوم بل كس ته وويل طلق امراتی (ته زمانښځې ته طلاق ورکړه )نودوكيل دااختياربه په مجلس پوري مقيدنه وي ولی چې داتوكيل دی اوتوكيل په مجلس پوري مقيدنه وي ،البته كه خاوندوويل طلق امرأتی ان شئت (زمانښځې ته طلاق ورکړه كه ستاخوښه وي )يعنی دان شئت لفظ يې اضافه کړنوپه دي صورت كې وكيل لره صرف په همدي مجلس كې دطلاق ورکولواختيارشته ولی چې خاوندطلاق په مشئت پوري مقيد کړی دی نودله قبيلې دتمليكاتو دی توكيل نه دی ولی چې په مشيت سره تصرف كونكی مالک وني ،اووكيل خوپه تصرف كولوديانة مجبوروي ترڅوله وعده وكالت څخه مخالفت رانه شي اوتمليكات په مجلس پوري مقيدوي لهذاله همدي مجلس څخه وروسته وكيل لره دطلاق ورکولواختيارنشته .

(٩٠)وَلَوْ قَالَ لَهَا طَلِّقِي نَفْسَكِ ثَلَاثًا فَطَلَّقَتْ وَاحِدَةً وَقَعَتْ وَاحِدَةٌ لَا فِي عَكْسِهِ (٩١) وَطَلِّقِي نَفْسَكِ ثَلَاثًا إنْ شِئْتِ فَطَلَّقَتْ وَاحِدَةً وَعَكْسُهُ لَا (٩٢) وَلَوْ أَمَرَهَا بِالْبَائِنِ أَوْ الرَّجْعِيِّ فَعَكَسَتْ وَقَعَ مَا أَمَرَ بِهِ

**ترجمه** :اوكه خاوندښځې ته وويل ،ته خپل ځان ته دري طلاقه ورکړه ،هغې ځان ته يو طلاق ورکړ نويو واقع كيږي نه ددي په عكس كې ،او (كه يې وويل )ته خپل ځان ته دري طلاقه ورکړ كه ستاخوښه وي ښځې

يو طلاق ورکړاو ددي عکس نو نه واقع کيږي ،او که خاوند دي لره حکم وکړ د بائن يا رجعي او دي دهغه برعکس وکړ نو واقع کيږي هغه دکوم چې خاوند امر کړي وي.

**تشريح**: (۹۰)که خاوند خپلې ښځې ته وويل طلقي نفسک ثلثا (ته خپل ځان ته دري طلاقه ورکړه) ښځې په ځواب کې خپل ځان ته يو طلاق ورکړ نو يو طلاق واقع کيږي ولی چې دخاوند پ اختيار ورکولو سره ښځه د دريو طلاقو مالکه ګرځي نو ديوه طلاق دواقع کولو مالکه هم ګرځي لکه څرنګه چې خپله خاوند د دريو طلاقو مالک دی نو ديوه مالک به هم وي. مګر ددي په عکس کې طلاق نه واقع کيږي يعنی که خاوند وويل طلقي نفسک واحدة (ته خپل ځان ته يو طلاق ورکړه) ددي په ځواب کې ښځې خپل ځان ته دري طلاقه ورکړل نو يو طلاق هم نه واقع کيږي ولی خاوند چې دکوم اجازت ورکړی دی ښځې هغه نه دی کړی ځکه چې ثلاث دعدد مرکب مجتمع نوم دی او واحدة فرد دی په کوم کې چې هيڅ ترتيب نشته لهذا په ثلاث او واحدة کې مغائرت دی لهذا د ښځې کلام مبتداء کلام شمارل کيږي د زوج دکلام ځواب نه شمارل کيږي.

(۹۱)قوله وطلقي نفسک ثلاثاان شئت فطلقت واحدة لاای لوقال الزوج طلقي نفسک ثلاثافطلقت واحدة لايقع شئ كذافي عکسه،يعنی که خاوند وويل طلقي نفسک ثلاثا ان شئت (ته خپل ځان ته دري طلاقه وکړه که ستا خوښه وي )ښځې په ځواب کې ځان ته يو طلاق ورکړ يا ددي صورت عکس وي يعنی خاوند وويل طلقي نفسک واحدة ان شئت (ته خپل ځان ته يو طلاق ورکړه که ستا خوښه وي )ښځې په ځواب کې ځان ته دري طلاقه ورکړل نو په دي دواړو صورتونو کې طلاق نه واقع کيږي نه يو نه دري،ولی چې په لومړنی صورت کې دخاوند دقول معنی داده چې ان شئت الثلاث فطلق نفسک ثلاثا ،نو دوقوع ثلاث لپاره دثلاث مشيت شرط دی او څرنګه چې شرط موجود نه شو لهذا طلاق نه واقع کيږي .اوپه دوهم صورت کې ځکه طلاق نه واقع کيږي چې خاوند چې دکوم اجازت ورکړی دی ښځې هغه نه دی کړی په دي وجه چې ثلاث دعدد مرکب مجتمع نوم دی او واحدة فردی په کوم کې چې هيڅ ترکيب نشته لهذا په ثلاث او واحدة کې مغائرت دی ،قوله وعکسه لاای لوقال لهاطلقي نفسک واحدة ان شئت فطلقت ثلاثالم يقع شئ.

**ف**:دصاحبينو په نزد په دوهم صورت کې يو طلاق واقع کيږي ولی خاوند چې ښځه دکوم شئ مالکه جوړه کړي وه (يعنی ديو طلاق )ښځې هغه واقع کړاوله دي څخه زائد يې هم واقع کړ(يعنی دوه نور زائد طلاقونه)نو داداسې شوه لکه چې خاوند خپلې ښځې ته سل طلاقه ورکړي نو دڅومره طلاقونو چې دی مالک دی(يعنی دري طلاقه )هغه خو واقع کيږي او دکوموچې دی مالک نه دی (يعنی له دريو څخه زائد)هغه لغوه کيږي .

**ف**:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمختار:(طلقي نفسک ثلاثاان شئت فطلقت واحدة و)كذا(عکسه لا)يقع لهمالاشتراط الموافقة لفظالمافی تعليق الخانية امرهابعشرفطلقت ثلاثااوبواحدة فطلقت نصفه لم يقع (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۲/۵۲۹)

(۹۲)که خاوند ښځې ته اجازه ورکړي وه چې خپل ځان ته بائن طلاق ورکړه يا يې د رجعي اجازه ورکړي وه ښځې ددي په ځواب کې سرچپه کار وکړ يعنی په اول صورت کې يې خپل ځان ته رجعي طلاق ورکړاو په دوهم صورت کې يې ځان ته بائن طلاق ورکړ نو په دواړو صورتونو کې هغه طلاق واقع کيږي دکوم

چې خاوند اجازت ورکړی دی کوم وصف چې ښځه بیانوي هغه لغوه دی ولی چې خاونددذات طلاق مع وصف اجازت ورکړی وو ښځې په ذات طلاق کې موافقت اوپه وصف کې مخالفت وکړاوپه وصف کې دمخالفت په وجه سره اصل طلاق نه باطلیږي لهذااصل طلاق له هغه وصف سره واقع کیږي چې دهغه ذکرخاوند کړی دی.

(۹۳) وَأَنْتِ طَالِقٌ إِنْ شِئْتِ فَقَالَتْ شِئْتُ إِنْ شِئْتَ فَقَالَ شِئْتُ يَنْوِي الطَّلَاقَ أَوْ قَالَتْ شِئْتُ إِنْ كَانَ كَذَا الْمَعْدُومِ بَطَلَ (۹۴) وَإِنْ كَانَ لِشَيْءٍ مَضَى طَلُقَتْ (۹۵) وَأَنْتِ طَالِقٌ مَتَى شِئْتِ أَوْ مَتَى مَا شِئْتِ أَوْ إِذَا شِئْتِ أَوْ إِذَا مَا شِئْتِ فَرَدَّتْ الْأَمْرَ لَا يَرْتَدُّ (۹۶) وَلَا يَتَقَيَّدُ بِالْمَجْلِسِ وَلَا تُطَلِّقُ إِلَّا وَاحِدَةً

**ترجمه**: ته طلاقه یې که ستاخوښه وي ښځې وویل زما خوښه ده که ستاخوښه وي خاوند وویل زما خوښه ده او(په دې سره )دطلاق نیت وکړیایې ښځې وویل زماخوښه ده که داسې وشول اودایې دکوم معدوم شئ په باره کې وویل نودا قول باطلیږي ،اوکه یې دکوم تیرشوی امرپه باره کې وویل نو طلاق واقع کیږي ،ته طلاقه یې کوم وخت چې ستاخوښه شې یاترکومه وخته پوري چې ستا خوښه وي یاکله چې ته وغواړي یاترکله چې ته وغواړي اوښځې دارد کړنونه ردیږي ،اومقیدبه نه وي په مجلس پوري اوطلاق نه واقع کیږي مګریو.

**تشریح**: (۹۳)که خاوند خپلې ښځې ته وویل انت طالق ان شئت (ته دې طلاقه یې که ستاخوښه وي) ښځې وویل شئت ان شئت(زماخوښه ده که ستاخوښه وي )خاونددطلاق په نیت کولوسره وویل شئت (زماخوښه ده )یاښځې په ځواب کې دیومعدوم شئ په باره کې وویل چې هوزماخوښه ده که فلانکی کارداسې وشي ،نوپه دې دواړوصورتونوکې دښځې قول باطل دی طلاق نه واقع کیږي ولی چې خاوند طلاق په مطلق مشیت پوري معلق کړی وو اوښځې مشیت په ان شئت یاان کان کذاالمعدوم پوري معلق کړلهذادشرط دنه موجودوالي په وجه طلاق نه واقع کیږي .اودخاوندپه شئت قول سره هم طلاق نه واقع کیږي که څه هم دطلاق نیت وکړي ولی چې دښځې په کلام کې دطلاق ذکرنشته (ځکه چې ښځې دانه دي ویلې چې شئت طلاقی )چې خاوند دهغه خوښونکی شي اوصرف نیت په غیرمذکورکې عمل نشې کولی.

(۹۴)اوکه په پورته ذکرشوی صورت کې ښځې دکوم داسې شئ طرف ته اشاره وکړه کوم چې له وړاندې څخه شوی وومثلاوې ویل زه خپل ځان ته طلاق ورکول خوښوم که زیدله سفرڅخه راغی ،اوحال داچې زیدله دې څخه وړاندې له سفرڅخه راغلی وو نوپه دې صورت کې پرښځه طلاق واقع کیږي ولی کوم طلاق چې پرداسې شرط پوري معلق وي کوم چې فی الحال موجودوي نوداسې طلاق معلق نه دی بلکه فی الحال واقع کیږي.

(۹۵)قوله انت طالق متی شئت ای لوقال الزوج لامرأته انت طالق متی شئت الخ ،یعنی که خاوند خپلې ښځې ته وویل انت طالق متی شئت اومتی ماشئت اواذاشئت اواذاماشئت (ته دې طلاقه یې کوم وخت چې ستاخوښه شي یاترکومه وخته چې ستاخوښه شي یاکله چې ته وغواړي یاترکله چې ستاخوښه شي ) ښځې دااختیاررد کړاووې ویل زه طلاق نه خوښوم ،نودانه ردنه دی بلکه له ردولوڅخه وروسته هم که ښځه خپل ځان ته طلاق ورکول وغواړي ورکولی یې شي ولی چې خاوندښځه په هغه وخت کې دطلاق مالکه جوړه

کړي ده کوم وخت چې داخپل ځان ته طلاق ورکول خوښ کړي لهذادښځې له خوښې څخه وړاندي داد طلاق مالکه نه ده چې ددي په ردولو سره ردشي په دي وجه دښځې له طرفه دردا عتبار هم نشته.

(۹۶)قوله ولا یتقید بالمجلس ای لایتقید ایقاع الطلاق بالمجلس ،یعنی په مذکوره بالاصورت کې دښځې طلاق واقع کول په همدي مجلس پوري مقیدهم نه دي ولی چې داالفاظ ټولو وختونو ته شامل دي نوداداسې شوګویاخاوند ښځې ته وویل انت طالق فی ای وقت شئت ،لهذا ښځه چې کله هم وغواړي طلاق واقع کولی شي .هوپه دي الفاظو سره دااختیارورکولو په صورت کې ښځه ځان ته صرف یو طلاق ورکولی شي ولی چې داالفاظ دعموم زمانې لپاره راځي نه دعموم افعالو لپاره نو ښځې لره به دعموم زمانې په وجه هروخت دخپل ځان دطلاقولو اختیاروي ،مګردعموم افعالو نه وجود په وجه به له یوه طلاق څخه وروسته دبل طلاق دورکولو اختیارنه وي .

(۹۷)وفي کُلَّمَا شِئْتِ لهاأن تُفَرِّقَ الثَّلاثَ وَلَاتَجْمَعَ(۹۸)وَلَوْ طَلَّقَتْ بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ لَايَقَعُ(۹۹)وفي حَيْثُ شِئْتِ وَأَيْنَ شِئْتِ لم تَطْلُقْ حتى تَشَاءَ في مَجْلِسِهَا(۱۰۰)وفي كَيْفَ شِئْتِ تَقَعُ رَجْعِيَّةٌ(۱۰۱)فَإِنْ شَاءَتْ بَائِنَةً أو ثَلَاثًا وَنَوَاهُ وَقَعَ(۱۰۲)وفي كَمْ شِئْتِ او مَاشِئْتِ تَطْلُقُ ما شَاءَتْ فيه(۱۰۳)فَإِنْ رَدَّتْ ارْتَدَّ(۱۰۴)وفي طَلِّقِي من ثَلَاثٍ مَاشِئْتِ تَطْلُقُ مَادُونَ الثَّلَاثِ

**ترجمه** :اودکلماشئت ،دویلوپه صورت کې ښځې لره اختیاردی چې جلاجلادري طلاقه واقع کړي اویوځای یې نشي واقع کولی ،اوکه یې طلاق واقع کړله دوهم خاوند څخه وروسته نونه واقع کیږي ، اودحیث شئت او این شئت ویلوپه صورت کې طلاق نه واقع کیږي ترڅوچې دا وغواړي په همدي مجلس کې ،اوپه کیف شئت کې رجعی طلاق واقع کیږي، نوکه ښځې بائن یادري طلاقه خوښ کړل اوخاوند دهغه نیت کړی وو نوواقع کیږي ،اوپه کم شئت اوماشئت کې دي طلاق واقع کړي څومره چې یې خوښه وي په همدي مجلس کې ،اوکه ښځې امرردکړ نوردیږي ،اوپه دي ویلوکې ته طلاق ورکړه له دریوڅخه څومره چې ستاخوښه وي هغه طلاق واقع کولی شې له دریوڅخه کم .

**تشریح** :(۹۷)قوله وفي کلماشئت لهاان تفرق الثلاث ای لوقال الزوج لهاانت طالق کلماشئت فیجوزلهاان تفرق الثلاث ،یعنی که خاوندخپلې ښځې ته وویل انت طالق کلماشئت (ته دي طلاقه یې کله چې هم ستاخوښه شي )نوپه دي صورت کې ښځه خپل ځان ته دري طلاقه جلاجلاورکولی شي په یوځل یوځای دري طلاقه نشي ورکولی ولی چې کلمه دکلمادعموم اوقات اوافعالو دواړولپاره ده مګردعموم افرادي لپاره ده داجتماعی لپاره نه ده لهذاهرواردیوه طلاق دواقع کولو مقتضی ده .

(۹۸)اوپه مذکوره بالاصورت کې که ښځې ځان ته دري طلاقه ورکړل ترڅوچې مغلظه شوه اوبیایې له بل خاوندسره نکاح وکړه بیاله دوهم خاوند څخه خلاصه شوه دوهم ځل اولنی خاوندته راغله اوس داخاوندسابقه کلماشئت په کلمه سره دااختیارورکولوپه وجه ځان ته طلاق ورکوي نوداطلاق نه واقع کیږي ولی چې ښځې ته اختیارپه ملک سابق کې ورکړل شوی وو اوس خوداجدیدملک دی لهذاپه دي ملک کې دي لره ځان ته دطلاق ورکولو اختیارنشته.

(۹۹)قوله وفي حيث شئت الخ ای وفي قول الزوج لامرأته انت طالق حيث شئت ،یعنی که خاوند خپلې ښځې ته وویل انت طالق حیث شئت (ته دي طلاقه یې په کوم ځای کې چې ته وغواړي )یایې وویل این شئت (ته دي طلاقه

يې چيرته چې ستاخوښه وي )نوښځه په همدي مجلس کې خپل ځان ته طلاق ورکولی شي که داله مجلس ځخه ولاړه شوه نواختيارختميږي اوس داځان ته طلاق نه شي ورکولی ،حيث اواين اسماء مکان دي اوطلاق په کوم مکان پوري معلق نه وي يعني داسې نه وي چې طلاق په يوه مکان کې واقع وي اوپه بل کې واقع نه وي لهذاالغوه دي نودمطلق مشيت ذکرباقي پاتې شواوپه مطلق مشيت سره چې کوم اختيارثابتيږي هغه په مجلس پوري موقوف وي .

(۱۰۰)قوله ولي کيف شئت اى ولي قول الزوج لامرأته انت طالق كيف شئت ،يعنی که خاوندښځې ته وويل انت طالق کيف شئت (ته دي طلاقه يې په کوم ډول چې ستاخوښه وي )نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدښځې له مشيت ځخه وړاندي يورجعی طلاق واقع کيږي ولی چې دکيف کلمه دطلبِ وصف لپاره راځي نه دطلبِ اصل لپاره لهذادزوج له طرفه تفويض په وصف طلاق کې دی اوپه وصفِ طلاق کې تفويض دطلاق دموجودوالی تقاضاکوي اوداصل طلاق وجودبغيرله وقوع طلاق ځخه نه وي لهذااصل طلاق خوله مشيت ځخه وړاندي واقع کيږي ترځوله دي ځخه وروسته دوصف طلاق طلب وکړای شي ،حال داچې دصاحبينوپه نزددښځې له مشيت ځخه وړاندي طلاق نه واقع کيږي .

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لماقال المفتي غلام قادرالنعماني:القول الراجح هو قول ابي حنيفه,قال العلامة جلال الدين الخوارزمي وماقاله اولي لان اثبات الموصوف وان كان فيه تخصيص بعض الاوصاف عن التعليق ليصح الاستيصاف اولي من تعليق اصل الطلاق بالمشية....الخ(القول الراجح: ۱/۳۲۰)

(۱۰۱)ياکه ښځې يوبائن طلاق خوښ کړيايې دري طلاقه خوښ کړل اوخاوندهم دهغه نيت کړی وو نوداواقع کيږي ولی چې دښځې په مشيت اودخاوندپه نيت کې موافقت موجودشواوکه دښځې مشيت دخاوندله نيت سره موافق نه وو نودښځې مشيت لغوه دی دخاوندپه واقع کولوسره يوطلاق واقع کيږي.

(۱۰۲)قوله ولي كم شئت الخ اى ولي قول الزوج لامرأته انت طالق كم شئت الخ ،يعنی که خاوندښځې ته وويل انت طالق کم شئت (ته دي طلاقه يې څومره اندازه چې ستاخوښه وي )يايې وويل انت طالق ماشئت (ته دي طلاقه يې څومره چې ستاخوښه وي)نوپه دي دواړوصورتونوکې ښځې په همدي مجلس کې چې څومره وغواړي طلاق ورکولی شي ولی چې لفظ کم اوماد واړه دعددلپاره استعماليږي اوخاونددهغه عددتفويض کړی دی کوم عددچې ښځه وغواړي لهذاښځه چې څومره وغواړي خپل ځان ته طلاق ورکولی شي .اودښځې اختيارپه همدي مجلس پوري دمقيدوالی وجه داده چې داامرواحددی اوپه دي کې داسې کوم لفظ نشته چې په عموم اوقات ياتکراردلالت وکړي لهذافی الحال دځواب دمقتضی والی په وجه به په همدي مجلس پوري خاص وي .

(۱۰۳)اوکه په مذکوره بالاصورت کې ښځې ردکړ يعنی وي ويل چې زه خپل ځان ته طلاق نه ورکول خوښوم نودادريږي وروسته که داطلاق ورکول وغواړي نودي لره به اختيارنه وي ولی چې داتفويض د امرواحددی په دي کې تکرارنشته اوداخطاب هم فی الحال دی نوځواب به هم فی الحال غواړي لهذاله همدي مجلس ځخه وروسته به دي لره اختيارنه وي .

(١٠۴)قوله ولي قول الزوج طلقي نفسک من ثلاث الخ اى لوقال الزوج لامرأته طلقي نفسک من ثلاث الخ ،يعنى كه خاوند خپلې ښځې ته وويل طلقي نفسک من ثلاث ماشئت (ته خپل ځان ته طلاق ورکړه له دريوڅخه چې څومره ستاخوښه وي) نوداامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددا ښځه ځان ته له دريوڅخه کم طلاقونه ورکولى شي .حال داچې دصاحبينوپه نزددري طلاقه هم ورکولى شي ولى دمالفظ دتعميم په معنى کې محکم دى اولفظ من كله دتميز كله دبيان اوكله له دي دواړوڅخه دعلاوه لپاره راځي نودخاوندپه کلام کې محکم اومحتمل دواړه جمع شول اوقاعده ده چې محتمل به په محکم باندي حمل کيږي لهذالفظ من به بيانيه ګرځول کيږي نودخاونددقول معنى داده چې ته خپل ځان ته چې څومره غواړي طلاقونه ورکړه يعنى دري ،لهذاتردريوپوري طلاقونه ورکولى شي .دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادى چې لفظ من په تبعيض کې حقيقت دى اولفظ ماپه تعميم کې حقيقت دى اوپه دواړوعمل کول ممکن هم دى په دي ډول چې بعض عام مرادشي اوددووعددهمدا شان دى ولې چې يوه ته په نسبت ددووعددعام دى اودريوته په نسبت بعض دى حال داچې ددريودمرادولوپه صورت کې دلفظ من په معنى باندي عمل نه کيږي .

ف:دامام ابوحنيفه قول راجح دى لمافي الدرالمختار:(قال لهاطلقي)نفسک (من ثلاث ماشئت تطلق مادون الثلاث ومثله اختارى من الثلاث ماشئت)لان من تبعيضة وقالا بيانية فتطلق الثلاث والاول اظهر (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار: ٢/٥٣٣)

## بَابُ التَّعْلِيقِ

دباب دتعليق طلاق په بيان کې دى

دتعليق لغوى معنى ځړول دي دفقهاؤپه اصطلاح کې کومه خبره په کوم کارپوري موقوف کولوته ويل کيږي ګواکى دشرط دوهم نوم تعليق دى .يعنى دتعليق معنى ده ديوې جملې دمضمون حصول دبلې جملې دمضمون په حصول پورې تړل لکه چې خاوندخپلې ښځې ته ووايي انت طالق ان دخلت الدار .

مصنف رحمه الله وړاندي طلاق منجزله خپلوټولواقساموسره بيان کړاوس طلاق معلق ذكركوي دطلاق معلق دمؤخركولو وجه داده چې طلاق معلق فرع ده اوطلاقِ منجزاصل دى اوښکاره ده چې داصل تقديم مناسب دى اودفرع تاخيرمناسب دى ،ځکه يې طلاق منجزوړاندي اوطلاق معلق وروسته بيان کړ، همداراز طلاق منجزمفرددى او معلق له طلاق اوشرط څخه مرکب دى اومرکب له مفردڅخه مؤخروي .

(١٠٥)اِنَّمَا يَصِحُّ فِي الْمِلْکِ كَقَوْلِهِ لِمَنْكُوحَتِهِ اِنْ زُرْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ او مضافًا اِلَيْهِ كَاِنْ نَكَحْتُکِ فَأَنْتِ طَالِقٌ فَيَقَعُ بَعْدَهُ (١٠٦)فَلَوْ قَالَ لِأَجْنَبِيَّةٍ اِنْ زُرْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ فَنَكَحَهَا فَزَارَتْ لَمْ تَطْلُقْ

**ترجمه** :تعليق صحيح دى صرف په ملک کې لکه دخاوندخپلې ښځې ته ويل که تازيارت وکړنوته طلاقه يې ياپې دملک طرف ته مضاف کړي لکه که ماله تاسره نکاح وکړه نوته طلاقه يې ،نوواقع کيږي له دي څخه

وروسته ،نو که یې اجنبیه ته وویل چې که تازیارت وکړنو ته طلاقه یې ،بیایې له دي سره نکاح وکړه بیا دي زیارت وکړنو طلاق نه واقع کیږي .

**تشریح** :(۱۰۵)قوله المایصح فی الملک ای المایصح تعلیق الطلاق فی الملک ،یعنی ضابطه داده چې په شرط پوري دطلاق معلق کول هغه وخت صحیح ده چې حالف (زوج )دتعلیق پروخت دطلاق مالک وي یعنی دکومې ښځې طلاق چې دی معلق کوي هغه به دده منکوحه وي مثلاً خپلې منکوحې ته ووایې ان زرت فلانا فانت طالق (که تادفلانی کس سره ملاقات وکړنو ته طلاقه یې )،یاطلاق دخپل ملک طرف ته منسوب کړي نوهم تعلیق صحیح دی مثلاً اجنبی ښځې ته ووایې ان نکحتک فانت طالق (که ماله تاسره نکاح وکړه نو ته طلاقه یې )نوپه دي دواړوصورتونوکې دشرط په پوره کیدلوسره طلاق واقع کیږي . دچادزیارت کولومعنی ده داکرام اواستیناس لپاره له ده سره دیوځای کیدلو قصد کول.

(۱۰۶)که دتعلیق پروخت زوج دطلاق مالک نه وو اونه یې طلاق دملک طرف ته منسوب کړنوطلاق نه واقع کیږي مثلاًچاکومې اجنبیه ښځې ته وویل ان زرت فانت طالق (که تاله فلان سره ملاقات وکړنو ته طلاقه یې )بیاده له دي ښځې سره نکاح وکړه بیاهغې له فلان سره ملاقات وکړنوطلاق نه واقع کیږي ولی چې دتعلیق پروخت نه دی دطلاق مالک دی اونه ده طلاق دملک طرف ته منسوب کړی دی لهذا په دي صورت کې طلاق نه واقع کیږي .

(۱۰۷)وَأَلْفَاظُ الشَّرْطِ إِنْ وَإِذَا وَإِذَامَا وَكُلٌّ وَكُلَّمَا وَمَتَى وَمَتَى مَا فَفِيهَا إِنْ وُجِدَ الشَّرْطُ انْتَهَتْ الْيَمِينُ (۱۰۸) إِلَّا فِي كُلَّمَا لِاقْتِضَائِهِ عُمُومَ الْأَفْعَالِ كَاقْتِضَاءِ كُلٍّ عُمُومَ الْأَسْمَاءِ فَلَوْ قَالَ كُلَّمَا تَزَوَّجْت امْرَأَةً يَحْنَثُ بِكُلِّ امْرَأَةٍ وَلَوْ بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ

**ترجمه**:اودشرط الفاظ دادي ،ان ،اذا ،اذاما ،کل ،کلما ،متی ،متی ما ،نوپه دوئ کې که شرط موجود شونوقسم پای ته رسیږي ،مګرپه کلماکې ولی چې هغه تقاضاکوي دافعالو دعموم لکه څرنګه چې کل دعموم اسماء ،نوکه یې وویل کله چې هم زه نکاح وکړم له کومې ښځې سره نوهغه دي طلاقه وي نوحانث کیږي هرځل کله چې دی له کومې ښځې سره نکاح کړي که څه هم له دوهم خاوند څخه وروسته وي .

**تشریح** :(۱۰۷)الفاظ شرط ان اواذا الخ دي ،په دي کې لفظ کل په حقیقت کې دشرط له الفاظو څخه نه دی ولی چې دشرط له لفظ څخه وروسته فعل وي حال داچې له کل څخه وروسته اسم وي هولفظ کل ملحق بالفاظ شرط دی لتعلیق الفعل بالاسم الذی یلیها لکه کل امراة اتزوجها فهی طالق (له کومې ښځې سره چې هم زه واده وکړم هغه طلاقه ده )،اوله کلما څخه ماسوادباقی ټولوالفاظ شرط حکم دادی چې کله شرط موجودشي نوقسم په پوره کیدلوسره ختمیږي ،ولی چې له کلماساواباقی الفاظ شرط لغة دعموم اوتکرارتقاضانه کوي لهذا یوځل دفعل په موجودیدلوسره شرط پوره کیږي اوبغیرله شرط څخه یمین نه باقی نه پاتې کیږي.

(۱۰۸)پاتې شولفظ دکلمانوڅرنګه چې داپه افعالوکې دعموم تقاضاکوي لکه دکل لفظ چې دعموم اسماء تقاضاکوي اودتعمیم لپاره تکرارلازم دی په دي وجه په کلماکې دشرط له موجودیدلو څخه وروسته هم یمین باقی پاتې کیږي مثلاً چاوویل کلماتزوجت امراة فهی طالق (زه چې کله هم له کومې ښځې سره نکاح وکړم هغه طلاقه ده )نوکله چې هم نکاح وکړي پرهغې طلاق واقع کیږي که څه هم په دوهم خاوندله حلاله کولوڅخه وروسته نکاح وکړي ولی چې ددي یمین صحت په دي اعتبارسره دی چې داکس

دنكاح كولو په وجه دطلاق مالک ګرځي او نكاح كول غير محدود دی لهذا طلاق به هم غير محدود وي په دي وجه چي تكرار سبب دتكرار مسبب تقاضا كوي.

ف: دكلماله طلاق ځخه دځان ساتني داتدبير كيداى شي چي دده له اجازت ځخه بغير كوم اجنبى كس دده نكاح وكړي بيا چي كله ده ته دنكاح خبر ورسيږي نو په ژبه سره دي اجازه نه وركوي كه نه نو طلاق واقع كيږي دخبر په اوريدلو سره دي بالكل خاموش پاتي شي تحريري اجازت دي وركړي يادى تول مهر يا ځه حصه دمهر ښځي ته وروليږي تحريري اجازت ښځي ته وروليږل ضروري نه دى ،له خپل ځان سره په كوم كاغذ باندي ددي نكاح داجازت په ليكلو سره نكاح نافذيږي او طلاق نه واقع كيږي.(احسن الفتاوى ،۵/۱۷۶)

(۱۰۹)وزوال الملك بعد اليمين لا يبطلها(۱۱۰)فإن وجد الشرط في الملك طلقت وانحلت(۱۱۱)وإلا لا وانحلت(۱۱۲)وإن اختلفا في وجود الشرط فالقول له إلا إذا برهنت(۱۱۳)وما لا يعلم إلا منها فالقول لها في حقها كإن حضت فأنت طالق وفلانة أو إن كنت تحبيني فأنت طالق وفلانة فقالت حضت أو أحبك طلقت هي فقط(۱۱۴)وبرؤية الدم لا يقع فإن استمر ثلاثا وقع من حين رأت(۱۱۵)وفي إن حضت حيضة يقع حين تطهر

**ترجمه:** اودملک زائليدل نه باطلوي قسم ،نو كه موجود شو شرط په ملک كي نو ښځه طلاقيږي اوقسم پوره كيږي ،كه نه نو نه واقع كيږي اوشرط پوره كيږي ،اوكه زوجينو اختلاف وكړ په وجود دشرط كي نو قول دخاوند به معتبروي مګر داچي ښځه دليل پيش كړي ،اوكوم امورچي نه معلوميږي مګر دښځي له طرفه نو قول به دښځي معتبروي صرف دهمدي ښځي په حق كي لكه چي ووايي كه ته حائضه شوي نو ته طلاقه يي اوفلانی ښځه طلاقه ده ياي وويل كه ته له ماسره محبت لري نو ته طلاقه يي اوفلانی ښځه طلاقه ده نوښځي وويل زه حائضه شوم يازه له تاسره محبت لرم نو طلاقيږي صرف همدا ښځه،اوصرف په وينه ليدلو سره طلاق نه واقع كيږي اوكه تر دريو ورځو پوري وينه جاري پاتي شوه نو طلاق له هغه وخته واقع كيږي كله چي يي وينه ليدلي ده ،اودخاوند په دي ويلو سره چي كه تاته يو حيض درغی نو واقع كيږي طلاق كوم وخت چي داپاكه شي .

**تشريح :**(۱۰۹)يعنى كه له قسم ځخه وروسته دخاوند ملک په يوه يادوه طلاقه سره زائل شو نو قسم نه باطليږي مثلا زوج ښځي ته وويل ان دخلت الدار فانت طالق (كه ته كورته داخله شوي نو ته طلاقه يي ) يا ده ښځه بائنه كړه اوله دخول دار ځخه وړاندي ي ل ښځي سره دوهم ځل نكاح وكړه نو په دي زوال ملک سره قسم نه باطليږي ولی چي ديمين بقاء په شرط اوجزاء سره ده اومفروض دادی چي شرط نه دی موجود شوی لهذاشرط باقی پاتي دی اودبقاء محل په وجه سره جزاء هم باقی ده نو كله چي شرط اوجزاء دواړه باقي دي نو يمين هم باقی دی .

ف: ليكن له زوال ملک ځخه په يوه يادوه طلاقه سره زوال ملک مراددی ولی چي ددريو طلاقو په وجه دزائل شوي ملک په وجه يمين هم زائليږي ،مګر داچي يمين دسبب ملک طرف ته منسوب وي نو بيا په دريو طلاقو سره هم نه باطليږي .

په ملک کې راغله اوکورته داخله شوه

(۱۱۰)نوکه په مذکوره بالاصورت کې دابنځه بیادحالف په ملک کې راغله اوکورته داخله شوه نوطلاق واقع کیږي ولی چې شرط موجودشواومحل دنزول جزاء قابل دی لهذاپرده جزاء واقع کیږي ، اوقسم پوره کیږي ولی چې له شرط څخه بغیریمین لره بقاء نشته .

(۱۱۱)قوله والاوانحلت ای وان لم یوجدالشرط فی الملک بل یوجدفی غیرالملک لم یقع الطلاق وانحلت الیمین ، یعنی که شرط په ملک کې موجودنه شوبلکه له زوال ملک څخه وروسته موجودشومثلامذکوره ښځه له بینونت څخه وروسته دوهم ځل دحالف په نکاح کې له راتلوڅخه وړاندې کورته داخله شوه نوطلاق نه واقع کیږي ولی چې دنزول جزاء لپاره محل نشته ،اوقسم پوره کیږي ولی چې شرط موجودشولهذااوس که دابنځه دوهم ځل ددې خاوندپه نکاح کې راغله اوکورته داخله شوه نوپردې طلاق نه واقع کیږي .

(۱۱۲)که زوجینودشرط وجودکې اختلاف وکړمثلاخاوندوایې چې شرط نه دی موجودشوی یعنی ته کورته نه یې داخله شوې لهذاطلاق نه دی واقع شوی اوښځه وایې چې شرط موجودشوی دی یعنی زه کورته داخله شوې یم اوطلاق واقع شوی دی نودخاوندقول به معتبروي ولی چې دخاوندقول له اصل سره موافق دی ولی چې اصل عدم دشرط دی اوقول دمتمسک بالاصل معتبروي ،همدارازخاوندله وقوع طلاق څخه منکردی اوقول دمنکرمعتبروي ،البته که ښځې خپله دعوی په ګواهانوثابته کړه نوددې قول معتبردی ولی چې اوس ښځې خپله دعوی په حجت سره ثابته کړه .

(۱۱۳)البته که خاوندطلاق په کوم داسې شرط پورې معلق کړی وي دکوم علم چې صرف ښځې لره حاصلیدای شي نوپه وجودشرط کې دښځې قول صرف ددې دذات په باره کې قبلیږي دبلې حق کې نه قبلیږي مثلاخاوندخپلې یوې ښځې ته وویل ان حضت فانت طالق وفلانة (که تاته حیض درغی نوته اوفلانی طلاقې یاست )اوښځې وویل چې ماته حیض راغی نواستحساناطلاق واقع کیږي ولی چې حیض داسې شرط دی چې دهغه علم صرف ښځې لره کیدای شي ښځه په خپل حق کې امینه ده اودامین قول دده په حق قابل قبول وي ،مګرفلانة (یعنی ددې بن )نه طلاقیږي ولی چې دابنځه دخپلې بنې په حق کې شاهده ده اودیوفردشهادت معتبرنه دی خاص کرچې کله مقام هم دتهمت وي لهذادبن په حق کې ددې قول معتبرنه دی ولی چې دمتهم شهادت مردوددی .همداشان که خاوندښځې ته وویل ان کنت تحبینی فانت طالق وفلانة (که ته له ماسره محبت لرې نوته اوفلانی طلاقې یاست )ښځې وویل انااحبک (زه له تاسره محبت کوم )نوپردې طلاق واقع کیږي که څه هم ددې په زړه کې دهغه خلاف وي کوم چې دې ښکاره کړی دی ولی کله چې دحقیقت حال علم متعذرشونوسبب ظاهریعنی اخبار(دښځې خبرورکول )دحقیقت حال دلیل وګرځول شومګرفلانة (یعنی ددې بن )نه طلاقیږي لمامر.

(۱۱۴)قوله وبرؤیة الدم لایقع ای اذاقال لهاان حضت فانت طالق فرأت الدم لم یقع الطلاق برؤیة الدم حتی یستمرثلاثة ایام ،یعنی که خاوندښځې ته وویل اذاحضت فانت طالق (کله چې تاته حیض درشي نوته طلاقه یې )بیادې ښځې وینه ولیدله نوپه محض وینه لیدلوسره طلاق نه واقع کیږي ترڅوچې تردریوورځوپورې وینه جاري پاتې شي ولې لکه څرنګه چې دااحتمال شته چې داوینه دې حیض وي همداشان دااحتمال هم شته چې له دریوورځوڅخه په

کم دي منقطع شي اوداوينه دي استحاضه وي نودشک په وجه سره طلاق نه واقع کيږي.البته که تر پوره دريو ورځوپوري وينه ورغله نوله کوم وخت څخه چې وينه شروع شوي وه له هغه وخت څخه به دطلاق دواقع کيدلو حکم لګول کيږي ولې چې تردريو ورځوپوري دوينې دممتدوالي په وجه معلومه شوه چې داوينه له رحم څخه ده دحيض وينه ده استحاضه نه ده لهذا اله اول وخت څخه حيض شمارل کيږي .

(۱۱۵)قوله ولي ان حضت حيضة يقع اى ولي صورة قول الزوج لامرأته ان حضت حيضة يقع الطلاق ،يعنى که خاوند ښځې ته ووېل ان حضت حيضة فانت طالق (کله چې تاته يوحيض راشي نوته طلاقه يې )نودا ښځه کله چې له خپل دي حيض څخه پاکه نه شي نه طلاقيږي ولې چې حيضة په تاء سره حيض کامل ته ويل کيږي اودحيض کمال دده پرختموالي باندي وي اوختم والي په طهرسره وي لهذادطهرپه شروع کيدلو سره پردي طلاق واقع کيږي له دي څخه وراندي نه واقع کيږي .

(۱۱۶)وفي إن وَلَدت ذَكَرًا فأنت طالق واحدةً وَإن وَلَدت أنثى فثنتين فولدتهما ولم يدر الأول تطلق واحدةً قضاءً وثنتين تنزها ومضت العدة(۱۱۷)والملك يشترط لآخر الشرطين(۱۱۸)ويبطل تنجيز الثلاث تعليقه

**ترجمه** :اودخاوندپه دي ويلوکې چې که ستاهلک پيداشونوته په يوه طلاق طلاقه يې اوکه انجلۍ پيداشوه نوپه دوه طلاقه يې نودښځې دواړه پيداشول اواول معلوم نه شونويو طلاق واقع کيږي قضاء اودوه طلاقه واقع کيږي احتياطا اوددي عدت هم تيريږي،اوملک شرط دی په دووشرطونوکې داخيري لپاره ،اوباطلوي دري طلاقه في الحال واقع کول ددوئ تعليق لره .

**تشريح** :(۱۱۶)قوله وفي ان ولدت ذكرا الخ اى وفي صورة قول الزوج لامرأته ان ولدت ذكرا الخ ،يعنى که خاوند خپلي ښځې ته ووېل که تاهلک پيداکړنوته په يوه طلاق طلاقه يې اوکې دي نجلۍ پيداکړه نوپه دوه طلاقه طلاقه يې اوس داسې وشول چې ښځې هلک اوانجلۍ دواړه وزيږول نوکه دامعلومه شوه چې دهلک زيږدل وراندي وو نودشرط مطابق پرښځه يو طلاق واقع کيږي ،اودنجلۍ په زيږيدلو سره عدت هم پوره شوه ولې چې دحامله ښځې عدت وضع حمل وي، اوکه دنجلۍ زيږيدل وراندي وو نودشرط مطابق پرښځه دوه طلاقه واقع کيږي .اوکه دا معلومه نه شوه چې په هلک اونجلۍ دواړوکې کوم يواول وزيږيدی نوقضاء داښځه په يوطلاق طلاقيږي ولې چې په يوه اودووکې شک دی نويويقني دی ځکه يوواقع کيږي اوددوهم په وقوع کې دشک په وجه دوهم نه واقع کيږي مګراحتياطادوه طلاقه شمارل کيږي ولې کيدای شي چې نجلۍ دي اول زيږيدلې وي په دواړوصورتونوکې ددي ښځې عدت پای ته رسيږي ولې چې کوم يوهم اول وزيږيدی ښځه مطلقه شوه اوددوهم په زيږيدلو دښځې عدت تيرشوولې چې دحامله عدت وضع حمل ده .

(۱۱۷)يعنى ملک نکاح په دووشرطونوکې داخيري لپاره شرط دی مثلا چاخپلې ښځې ته ووېل که تاله زيداوبکرسره خبري وکړي نوته په دري طلاقه طلاقه يې ،بياخاونددي ته يوطلاق ورکړاودي له عدت پوره کولو څخه وروسته له زيدسره خبري وکړي بياسابقه خاوندله دي ښځې سره دوهم ځل نکاح وکړه اوس دي له بکرسره خبري وکړي نوپه دي وخت کې هغه معلق دري واړه طلاقونه واقع کيږي حال داچې دامام زفر رحمه الله په نزد معلق دري واړه طلاقونه نه واقع کيږي ترڅوچې شرط اول هم دملک نکاح پروخت موجودنه شي ولې چې دواړه شرطونه دشئ واحدپه شان دي اوملک دوجودثاني په وخت کې شرط دی نودوجوداول

پروخت به هم شرط وي .زموږدليل دادی چې ملک دتعليق پروخت شرط دی ترڅو جزاپرمرتبه شي اودشرط اول دوجودحالت دبقاء حالت دی لهذاپه دي کې ملک شرط نه دی ،ددي مسئلې څلورصورتونه دي(١)دواړه شرطونه په ملک کې موجودشي نوبالاتفاق طلاق واقع کيږي (٢)دواړه په غيرملک کې موجودشي نو بالاتفاق طلاق نه واقع کيږي (٣)اول شرط په ملک کې موجودشي ثانی په غيرملک کې نوداابن ليلی ماسوادهيچاپه نزدطلاق نه واقع کيږي(۴)اول شرط په غيرملک کې موجودشي اوثاني په ملک کې موجودشي داصورت مختلف فيه دی کمامر.

(١١٨)يعنی که چادخپلې ښځې دري واړه طلاقه په کوم شرط پوري معلق کړي وومثلاوويل که دفلان کورته داخله شوي نوته په دري طلاقه طلاقه يې ،بيايې هغه تنجيزاواقع کړل يعنی فی الحال بلاتعليق يې واقع کړل نوداولنيودريو طلاقونو تعليق باطليږي لهذاکه دي ښځې له بل خاوندسره نکاح وکړه بيايې له هغه څخه طلاق واخيست واپس اول زوج ته راغله اوس دفلان کورته داخله شوه نوپردي طلاق نه واقع کيږي ولی چې ددريو طلاقونودوقوع شرط دخول دارو و اوجزاء دهغه ملک دري طلاقه وو اوس چې کله هغه ملک باقی پاتې نه دی نوجزاء هم پاتې نه ده ،البته يوصورت له دي څخه مستثنی دی هغه داچې خاوندمعلق طلاق دخپل ملک طرف ته مضاف کړی وي اوتعليق دکلماپه لفظ سره وي نوپه دي صورت کې تعليق نه باطليږي لکه څرنگه چې وړاندي ددي تفصيل تيرشو.

(١١٩)وَلَوْ عَلَّقَ الثَّلَاثَ او العِتْقَ بالوَطءِ لم يَجِب العُقْرُ باللُّبْثِ (١٢٠)ولم يَصِر بِهِ مُرَاجِعًا في الرَّجْعِيِّ إلاّ إذَا أَوْلَجَ ثَانِيًا (١٢١)وَلَا تَطْلُقُ في إن نَكَحْتُهَا عَلَيْكِ فَهِيَ طَالِقٌ فَنَكَحَ عليها في عِدَّةِ البائِنِ (١٢٢)وَلَا في أنتِ طَالِقٌ إن شَاءَ اللهُ مُتَّصِلًا وَإِن مَاتَتْ قبل قَوْلِهِ إن شَاءَ اللهُ (١٢٣)وفي أنتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا إلَّا وَاحِدَةً يَقَعُ ثِنْتَانِ وفي إلّا اثْنَتَيْنِ يَقَعُ وَاحِدَةٌ وفي إلّا ثَلَاثًا ثَلَاثٌ

**ترجمه** :اوکه يې معلق کړل دري طلاقه ياازادي په وطی پوري نونه واجبيږي مهردځنډکولوپه وجه سره،اومراجعت کوونکی نه دی ددي په وجه په رجعی کې مگرداچې داخل يې کړي دوهم ځل ،اوطلاق نه واقع کيږي دخاوندپه دي ويلو کې چې که له فلانکۍ سره پرتانکاح وکړم نوهغه طلاقه ده ،بيايې پردي نکاح وکړه دطلاق بائن په عدت کې ،اونه دانت طالق سره متصل ان شاء الله ويلوپه صورت کې که څه هم ښځه وفات شي دخاوندله ان شاء الله ويلوڅخه وړاندي ،اوته طلاقه يې په دري طلاقه مگرپه يوه دويلوپه صورت کې دوه واقع کيږي ،اودمگردوويلوپه صورت کې يوواقع کيږي اودمگردريوويلوپه صورت کې دري واقع کيږي.

**تشريح** :(١١٩)که چادخپلې ښځې دري طلاقه يادخپلې مينځې ازادي په صحبت کولوپوري معلقه کړه مثلاوي ويل که زه له تاسره صحبت وکړم نوته په دري طلاقه طلاقه يې ،يايې خپلې مينځې ته وويل که زه له تاسره صحبت نوته ازاده يې، بيايې له دي سره صحبت وکړنو څرنگه چې خاوندد ښځې په شرمگاه کې خپل شرمگاه داخل کړي نوپرښځه دري طلاقه واقع کيږي اوپه دوهم صورت کې مينځه ازاديږي ولی چې شرط موجودشوبياکه داکس په همدي حالت باندي زائدڅه وخت لپاره ځنډوکړ(ای لم يخرجه بعدالتقاء الختانين)نوسره له دي چې داځنډکول حرام دی ليکن پردي کس ددي ځنډ کولوپه وجه مهرنه لازميږي ولی چې مهردجماع په

وجه لازمیږي او جماع دلته نه ده متحققه شوي ځکه چې له وقوع طلاق او دمینځې له ازادي وروسته ادخال الفرج فی الفرج نه ده موجود شوی او جماع ادخال الفرج فی الفرج ته ویل کیږي.

(۱۲۰) اوکه چادخپلې ښځې طلاق رجعی په جماع پوري معلق کړمثلاوي ویل که ماله تاسره صحبت وکړنوته په رجعی طلاق طلاقه یې ،بیاده له ښځې سره صحبت وکړنویورجعی طلاق واقع کیږي بیاکه داکس په همدي حالت باندي زائد دڅه وخت لپاره پاتې شو (ای لم یخرجه بعدالتقاء الختانین) نوپه دغه سره رجعت نه ثابتیږي ولی چې رجعت په جماع ثابتیږي اوپه دي حالت پاتې کیدل جماع نه ده بلکه دوام جماع ده ،هوکه دي کس خپله شرمگاه خارجه کړه اوبیایې داخله کړه نوپه دي صورت کې رجعت ثابتیږي ولی چې اوس جماع موجوده شوه.

(۱۲۱) که خاوندښځې ته وویل که ماپرتاباندي له فلانکۍ ښځې سره نکاح وکړه نوهغه طلاقه ده ،بیاخاوندخپلې منکوحه ښځې ته طلاق بائن ورکړاودهغې په عدت کې له دي فلانکۍ ښځې سره نکاح وکړه نوپه دي دوهمې ښځې طلاق نه واقع کیږي ولی چې اولنۍ ښځه دطلاق بائن په عدت کې ددي کس منکوحه نه ده لهذاله دوهمې ښځې سره نکاح پرمنکوحه له فلانکۍ سره نکاح نه شمارل کیږي نودشرط دنه پورکیدلوپه وجه طلاق نه واقع کیږي.

(۱۲۲) قوله ولا فی انت طالق ان شاء الله ،ای ولاتطلق ایضا فی قول الزوج لامرأته انت طالق ان شاء الله ،یعنی که خاوند خپلې ښځې ته وویل انت طالق ان شاء الله تعالی (ته طلاقه یې ان شاء الله) اودان شاء الله لفظ یې له انت طالق سره متصل ووایونوطلاق نه واقع کیږي ولی چې په داسې شرط پوري تعلیق دکوم چې وجود معلوم نه وي ابتداء کلام لره مغیروي په همدي وجه دان شاء الله دمتصل ویلوشرط ولگوی،اوکه دخاونددان شاء الله ویلوڅخه وراندي ښځه وفات شوه نوهم طلاق نه واقع کیږي ولی چې داستثناء په وجه کلام له ایجاب څخه خارج شونوکله چې ایجاب باطل شونوحکم هم باطل شو.

(۱۲۳) قوله وفی انت طالق الا واحدة ای وفی قول الزوج لامرأته انت طالق ثلاثا الا واحدة الخ ،یعنی که چاخپلې ښځې ته وویل انت طالق ثلاثا الا واحدة (ته په دري طلاقه طلاقه یې مگرپه یوه) نودوه طلاقه واقع کیږي ، اوکه یې وویل انت طالق ثلاثا الا اثنتین (ته په دري طلاقه طلاقه یې مگردوه) نویوطلاق واقع کیږي . حاصل داچې استثناء تکلم بالباقی بعد الاستثناء ته ویل کیږي نوداستثناء دصحت شرط دادی چې له استثناء څخه وروسته په مستثنی کې څه پاتې شي ترڅو متکلم په باقی مانده باندي متکلم پاتې شې حتی که خاوندوویل انت طالق ثلاثا الا ثلاثا (ته په دري طلاقه طلاقه یې مگر دري) نودري واړه واقع کیږي ولی چې بعدالاستثناء هیڅ شئ پاتې نه شو چې په هغه متکلم ته تکلم کونکی وویل شي لهذا داستثناء صحیح نه ده ولی چې داداسې شولکه چې څوک له اقرارڅخه وروسته انکاروکړي دکوم چې هیڅ اعتبارنشته.

## بَابُ طلاقِ الْمَرِيضِ

له دي ځخه وړاندي مصنف ﷫ دروغ کس طلاق له خپلوټولو اقسامو سره بیان کړاوس په دي باب کي دمریض دطلاق احکام بیانوي ځرنګه چي روغتیا اصل ده او مرض عارض ده او اصل له عارض ځخه مقدم وي په دي وجه يي په ذکرکي هم دروغ کس دطلاق احکام مقدم او دمریض دطلاق احکام مؤخر کړل.خاص له تعلیق الطلاق سره ددي باب مناسبت دادی چي دتعلیق په صورت کي طلاق من وجه واقع دی(که شرط موجود شو)اومن وجه واقع نه دی(که شرط موجود نه شو)همداشان دمرض الوفات طلاق من وجه واقع دی (یعنی له وراثت ځخه علاوه دنورواحکامو په اعتبار سره )اومن وجه نه دی واقع (یعنی دوراثت په اعتبارسره).

(۱۲۴)طَلَّقَهَا رَجْعِيًّا أَوْ بَائِنًا فِي مَرَضِهِ وَمَاتَ فِي عِدَّتِهَا وَرِثَتْ(۱۲۵)وَبَعْدَهَا لَا(۱۲۶)وَلَوْ أَبَانَهَا بِأَمْرِهَا أَوْ اخْتَلَعَتْ مِنْهُ أَوْ اخْتَارَتْ نَفْسَهَا بِتَفْوِيضِهِ لَمْ تَرِثْ(۱۲۷)وَلِي طَلِّقْنِي رَجْعِيَّةً فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا وَرِثَتْ(۱۲۸)وَإِنْ أَبَانَهَا بِأَمْرِهَا فِي مَرَضِهِ أَوْ تَصَادَقَا عَلَيْهَا فِي الصِّحَّةِ وَمَضِيِّ الْعِدَّةِ فَأَقَرَّ أَوْ أَوْصَى لَهَا فَلَهَا الْأَقَلُّ مِنْهُ وَمِنْ إِرْثِهَا

**ترجمه**:خاوند خپلي ښځي ته رجعی یابائن طلاق ورکړپه خپل مرض کي او وفات شودهغي په عدت کي نو وارثه ده ،اوله دي ځخه وراثه نه ده ،اوکه يي جلاکړه ددي په ویناسره یاښځي له ده سره خلع وکړه یاښځي اختیارکړخپل نفس دخاوندله طرف ځخه دتفویض طلاق په صورت کي نو وارثه نه ده ،اودښځي په دي قول کي چي ماته رجعی طلاق راکړه نوده دي لره دری طلاقه ورکړل نو وارثه به وي ،اوکه يي داجلاکړه ددي به ویناسره دخاوند په مرض کي ،یادواړودیوبل تصدیق وکړپه جلاوالی سره په روغتیا کي اودعدت پرتیریدلو بیاخاوند اقرار وکړیایي وصیت وکړښځي لره نوښځي لره اقل دی له اقرار او وصیت او ترکي ځخه.

**تشریح** :(۱۲۴)که خاوند په خپل مرض موت کي خپلي ښځي ته طلاق رجعی ورکړیایي بائن طلاق ورکړاو ده ده ښځه پردي راضي نه وه بیاخاوند وفات شواو ده ده ښځه تراوسه په عده کي وه اوښځه دوراثت مستحقه هم وه نو دا به دخپل خاوند وارثه وي ولی چي دخاوند په مرض وفات کي دښځي حق ده له مال سره متعلق کیږي نوپه دي حالت کي په طلاق ورکولو سره خاونددي دوراثت دحق دباطلولو اراده کړي ده لهذا ده داغلطه اراده به پرده بیرته واپس کیږي په دي دول چي دطلاق عمل به دعدت دتیریدلو ترزماني پوري مؤخرکیږي ترڅو له ښځي ځخه دحرمان وراثت ضررختم شي .په دي دول په مرضَ الموت کي طلاق ورکولو ته طلاق فارویل کیږي .

**ف**:دمرض الموت دتعریف په سلسله کي مختلف اقوال منقول دي اوپه هغو کي دیرفرق اوتفاوت موجود دی علامه حصکفی ﷫ لیکلي دي چي دناروغي یاپه کومه بله وجه ده هلاکت یقیني وي اودی له کور ځخه په راوتلو دخپلو ضروریاتو له پوره کولو ځخه قاصروي ،فقیه ابو اللیث ﷫ ځخه منقول دي چي ده دمرض موت دتحقق لپاره فریش والی ضروري نه ګانه ،دایي کافی ګڼله چي په عام دول داناروغی هلاکت ته منتجه وي ،علامه شامی ﷫ ددي تائید کړی دی اولیکلي يي دي چي دصدر شهید فتوی هم پرهمدي قول وه ،اوهمدا دامام محمد ﷫ له کلام سره هم اهنګ ده .(قاموس الفقه :۷۹/۵)

(۱۲۵)قوله وبعدهالا ای اذامات الرجل بعدالعدة لاترث مطلقا،یعنی که خاوندښځې دعدت له تیریدلو څخه وروسته وفات شونوبیاښځې لره میراث نشته ولی چې له عدت څخه وروسته نکاح من کل الوجوه ختمه شوه .دمصنف ﷫ قول ،فی مرضه ،صرف دطلاق بائن لپاره قیددی ولی چې دطلاق رجعی په صورت کې که مطلقه په عدت کې وي مطلقاوارثه ده خواه که په مرض کې طلاق ورکړي یاپه صحت کې ولی چې زوجیت قائم دی.

**الالغاز**:قال لامراته ان خرجت من هذاالماء وهی فی نهر جار فانت طالق فماالحیلة؟

**فقل**:تخرج ولایحنث لان الماء الذی کانت فیه زال بالجریان (الاشباه والنظائر)

(۱۲۶)اوکه خاوندښځې په ویلوسره دي لره بائن طلاق ورکړیاښځې له ده سره خلع وکړه یاخاونددي لره دطلاق اختیارورکړی وو اودخپل ځان اختیارکړمثلاوي ویل اختاری نفسک ،ښځې وویل اخترت نفسی ،نوپه دي دري واړه صورتونو کې هغه وارثه نه ده ولی چې ښځه دطلاق دمطالبې کولوپه وجه دخپل حق په ابطال په خپله راضي شوي ده .

(۱۲۷)قوله ولی طلقنی رجعیة ای فی قول المرأة لزوجهاطلقنی رجعیة الخ ،یعنی که ښځې خپل خاوندته وویل چې ماته یورجعی طلاق راکړه ،خاونددي ته یوځای دري طلاقه ورکړل بیاخاوندپه عدت کې وفات شونوښځه به له میراث څخه محرومه نه وي اوس به هم میراث ورکول کیږي ولی چې په دي صورت کې دي دخپل حق په ابطال رضانه ده ظاهره کړي ولی چې دي خورجعی طلاق طلب کړی وو په کوم چې نکاح نه ختمیږي اونه ښځه له میراث څخه محرومیږي .

(۱۲۸)اوکه خاوندښځې په غوښتنه سره په خپلې ناروغې کې دي ته بائن طلاق ورکړاوس خاونددي ښځې ته دقرض اقرارورکړیادي ته دڅه پیسودورکولووصیت وکړبیاخاوندوفات شونودي ښځې ته به هغه ورکول کیږي کوم چې په قرض اومیراث یاوصیت اومیراث کې لږوي ولی چې دتهمت امکان دی چې داقراراووصیت په شکل کې ښځې ته دزیاتې حصې دورکولوپه قصدسره خاوندطلاق ورکړی دی ،همداشان که دصحت په حالت کې دي لره دبائن طلاق ورکولو اودعدت په تیریدلوله دواړوڅخه یوه دهغه بل تصدیق وکړمثلاخاوندوویل چې ماتاته دصحت په حالت کې طلاق درکړی وو اوستاعدت هم تیرشوی دی ښځې دده تصدیق وکړاوس خاوندپه خپله ذمه ښځې لره دقرض اقراروکړ یایې دي لره دڅه پیسودورکولووصیت وکړبیاخاوندوفات شونودي ښځې ته به هغه ورکول کیږي کوم چې په قرض اومیراث یاوصیت اومیراث کې لږوي ولی چې دیوبل په تصدیق کولوکې دواړه متهم دي چې په دي دول زیاته حصه ورکول مقصوددی اودمتهم قول مردوددی لهذااقل به واجب وي .

(۱۲۹)وَمَنْ بَارَزَ رَجُلًا اَوْ قُدِّمَ لِيُقْتَلَ بِقَوَدٍ اَوْ رَجْمٍ فَأَبَانَهَا وَرِثَتْ اِنْ مَاتَ فِي ذٰلِكَ الْوَجْهِ اَوْ قُتِلَ (۱۳۰)وَلَوْ مَحْصُوْرًا اَوْ فِي صَفِّ الْقِتَالِ لَا (۱۳۱)وَلَوْ عَلَّقَ طَلَاقَهَا بِفِعْلِ اَجْنَبِيٍّ اَوْ بِمَجِيءِ الْوَقْتِ وَالتَّعْلِيقُ وَالشَّرْطُ فِي مَرَضِهِ (۱۳۲)اَوْ بِفِعْلِ نَفْسِهِ وَهُمَا فِي مَرَضِهِ اَوِ الشَّرْطُ فَقَطْ (۱۳۳)اَوْ بِفِعْلِهَا وَلَا بُدَّ لَهَا مِنْهُ وَهُمَا فِي الْمَرَضِ اَوِ الشَّرْطُ وَرِثَتْ وَفِي غَيْرِهَا لَا

**ترجمه**:اوڅوک چې دچامقابلې ته راووتی یاپه قصاص کې دقتل لپاره پیښ کړای شویادرجم لپاره نوده ښځه بائنه کړه نووارثه به وي که په همدي صورت کې وفات شویاووژل شو ،اوکه محصورووو یادجنګ په

صف کې وونو وارثه به نه وي، او که يې د ښځې طلاق د کوم اجنبي په فعل يا د کوم وخت په راتلو پورې معلق کړا و تعليق او شرط دواړه دده په مرض کې وو ،يايې په خپل فعل پورې معلق کړا و دواړه ياصرف شرط دده په مرض کې وو ،يايې د ښځې په داسې فعل پورې معلق کړله کوم څخه چې هغې ته چاره نه وه او تعليق او شرط دواړه ياصرف شرط په مرض کې وو نو وارثه به وي ،او په نورو صورتونو کې وارثه نه ده.

**تشريح** :(۱۲۹)که څوک په جنګ کې له خپل ځان څخه دډېرقوی کس دمقابلې لپاره ميدان ته راغی (دمخکنی زمانې خبره ده کوم وخت چې خلګو په توروا و نيزوسره جنګونه کول ددې دوردجنګ دانقشه نه ده )،ياکوم کس په قصاص کې وژل کيدلو يادسنګسار يدلو لپاره راوغوښتل شوا و ده په همدې وخت کې خپلې ښځې ته بائن طلاق ورکړنو که داخاوند په ميدان جنګ کې ووژل شويا په دوهم صورت کې قصاص ياسنګسارکړای شونو دا ښځه به دده وارثه وي ولې چې دخاوند په داسې حالت کې طلاق ورکول داسې دی لکه چې کوم خاوند په مرض الموت کې خپلې ښځې ته طلاق ورکړي.

(۱۳۰)قوله ولومحصورا اوفى صف القتال لااى لوكان الزوج محصورا اوفى صف القتال لاترث ،يعنی که خاوند چيرته بندي وو يا دجنګ په ميدان کې دجنګ په صف کې ولاړوو او په دې حالت کې ده خپلې ښځې ته بائن طلاق ورکړنو په دې دووصورتونو کې به دا ښځه دخاوند وارثه نه وي ولې چې په دې صورتونو کې دخاوند مرګ يقيني نه دی غالبه دده سلامتيا ده لهذا داسې نه ده لکه چې کوم خاوند په مرض الموت کې خپلې ښځې ته طلاق ورکړي.

(۱۳۱)که خاوند دخپلې ښځې طلاق دکوم اجنبي کس په کوم کارپوري معلق کړمثلا وي ويل انت طالق ان جاء زيدمن السفر(ته طلاقه يې که زيدله سفرڅخه راغی )،يايې دکوم وخت په راتلوپوري معلق کړمثلا وي ويل انت طالق اذاجاء شهرالمحرم (ته طلاقه يې کله چې دمحرم مياشت راشي )اوحال داچې دادواړه خبري (يعنی دخاوندتعليق طلاق او شرط يعنی دفلان کس يادمحرم دمياشتې راتګ ) دده په مرض الموت کې وي نوکه خاوندوفات شونو دا ښځه به وارثه وي ولې چې په دې صورتونو کې دخاوند طلاق ورکول طلاق الفار دی او دطلاق الفار په صورت کې ښځه وارثه وي.

(۱۳۲)قوله اوبفعل نفسه وهمافى مرضه الخ اى لوعلق طلاقهابفعل نفسه وهمافى مرضه الخ ،يعنی که خاوند په خپل کوم کارپوري طلاق معلق کړمثلا وي ويل ان اكلت الطعام فانت بائن (که ماډوډی وخوړله نوته بائنه يې)اوحال داچې دخاوند داتعليق اووجودشرط دواړه دده په مرض الموت کې وي ياصرف وجودشرط په مرض الموت کې وي تعليق دده دصحت په زمانه کې وي نوکه داکس وفات شونو دا ښځه به وارثه وي لمامر.

(۱۳۳)قوله اوبفعلهاولابدلهامنه الخ اى لوعلق طلاقهابفعلهاولابدلهامنه الخ ،يعنی که خاوند طلاق دښځې په داسې فعل پوري معلق کړچې له هغه څخه ښځې لره چاره نه وه مثلا وي ويل ان اكلت اوشربت فانت بائن (که تاخورک څښک وکړنو ته په بائن طلاقه طلاقه يې )خواه که شرط او تعليق دواړه په مرض الموت کې وي ياصرف شرط په مرض الموت کې وي نو په دې صورت کې به هم دا ښځه وارثه وي لمامر.

(۱۳۴)اوله لوړذکرشويو صورتونه څخه ماسوا په نورصورتونو کې ښځه وارثه نه ده مثلاً په ټولو مذکوره صورتونو کې شرط او تعليق دواړه د صحت په حالت کې وي يا صرف تعليق د صحت په حالت کې وي په هغه صورت په کوم کې چې د کوم اجنبی کس په فعل پوري طلاق معلق کړی وويا يې د کوم وخت په راتلو پوري طلاق معلق کړی وو ياڅرنګه چې هم وي په هغه صورت کې د ښځې له داسې فعل سره طلاق معلق کړي له کوم څخه چې ښځې لره چاره وي .

(۱۳۵)وَلَوْ أَبَانَهَا فِي مَرَضِهِ فَصَحَّ فَمَاتَ (۱۳۶)أَوْ أَبَانَهَا فَارْتَدَّتْ فَأَسْلَمَتْ فَمَاتَ لَمْ تَرِثْ (۱۳۷)وَإِنْ طَاوَعَتْ ابْنَ الزَّوْجِ (۳۸)أَوْ لَاعَنَ (۱۳۹)أَوْ آلَى مَرِيضًا وَرِثَتْ (۴۰)وَإِنْ آلَى فِي صِحَّتِهِ وَبَانَتْ بِهِ فِي مَرَضِهِ لَا

**ترجمه**:او که خاوند ښځه بائنه کړه په خپل مرض کې بيا دی روغ شو بيا وفات شو ،يا يې ښځه بائنه کړه بيا هغه مرتده شوه بيا مسلمانه شوه بيا خاوند وفات شونو وارثه نه ده ،او که ښځې مطاوعت وکړ (د جماع په سلسله کې ) د خاوند د زوی ،يا يې لعان وکړ ،يا يې ايلاء وکړه د مرض په حالت کې نو وارثه ده ،او که يې ايلاء وکړه د صحت په حالت کې او هغه بائنه شوه په ايلاء سره د خاوند په مرض کې نو نه ده .

**تشريح** :(۱۳۵)که خاوند په مرض کې ښځې ته طلاق بائن ورکړ بيا هغه روغ شو بيا دوهم ځل مريض شو او وفات شو نو ښځه به وارثه نه وي ولې چې په دامنځ کې په روغيدلو سره معلومه شوه چې په کومه ناروغی کې يې طلاق ورکړی وو هغه مرض الموت نه وو نو دا طلاق الفار نه شمارل کيږي او کله چې دا طلاق الفار نه دی نو د طلاق په وجه سره ښځه اجنبيه شوه لهذا وارثه به هم نه وي .

(۱۳۶)او که خاوند په مرض کې طلاق بائن ورکړ بيا ښځه (العياذ بالله )مرتده شوه بيا پېرته مسلمانه شوه او س خاوند د مطلقه د عدت په دوران کې وفات شو نو دا ښځه به وارثه نه وي ولې چې نکاح خو بې شکه د ارث سبب دی مګر په مرتد کيدلو سره ښځې د ارث اهليت باطل کړځکه چې مرتد د هيچا وارث نه وي او له اهليت ميراث څخه بغير ميراث باقی نه پاتې کيږي .پاتې شو بيرته د اسلام قبلولو وخت نو څرنګه چې سبب ارث يعنی نکاح نشته ځکه به وارثه هم نه وي .

(۱۳۷)او که خاوند په مرض کې ښځې ته طلاق بائن ورکړ بيا په عدت کې ښځې د خاوند زوی ته پرخپل ځان قدرت ورکړ او س خاوند وفات شو نو دا ښځه به وارثه وي ولې چې دلته فرقت د طلاق بائن په وجه راغلی دی نه د ښځې د خاوند زوی ته پرخپل ځان د قدرت ورکولو په وجه سره ،او د خاوند زوی ته پرخپل ځان د قدرت ورکولو په وجه د ارث اهليت نه ختميږي ولې چې محرميت له ارث سره منافی نه ده .

ف:البته که ښځې د قيام نکاح په حالت کې د جماع په سلسله کې د خاوند د زوی مطاوعت وکړ نو وارثه به نه وي ولې چې په دي صورت کې فرقت د مطاوعت په وجه راغلی او مطاوعت په خپله د زوجې له طرفه دی نو داسې به ګڼل کيږي چې دا د سبب ارث يعنی د زوجيت پر بطلان راضی ده په دي وجه به دا وارثه نه وي .

(۱۳۸)او که خاوند د صحت په حالت کې پر ښځه د زناکولو الزام ولګاو بيا يې په مرض الموت کې لعان وکړ او او س د ښځې د عدت په دوران کې خاوند انتقال شو نو دا ښځه به وارثه وي ولې چې د لعان په وجه سره تفريق هم د خاوند له طرفه تفريق ګڼل کيږي ولې چې خاوند په ښځه په الزام لګولو سره ښځه لعان ته

مجبور کړي ده ځکه چې ښځه خو دزناد الزام په وجه لعان کولو ته مجبوره ده ترڅو له خپل ځان څخه دزناتهمت اوعار دفع کړي نو خاوند فار ګڼل کيږي او دفار ښځه وارثه وي.

(۱۳۹)که خاوند دمرض په حالت کې له خپلې ښځې سره ايلاء وکړه يعنى دا قسم يې وخوړې چې والله لاأقربک اربعة اشهر (والله زه به ترڅلورومياشتوپورې ستاسره صحبت ونه کړم) بيادڅلور مياشتو په پوره کيدلو سره ښځه بائنه شوه او دعدت په دوران کې وه چې خاوند يې وفات شونوښځه به وارثه وي ولې چې دمرض په حالت کې په ايلاء کولو سره خاوند فار شمارل کيږي او دداسې خاوند ښځه دده وارثه وي.

(۱۴۰)اوکه مريض خاوند دصحت په حالت کې ايلاء وکړه بيا ددي مدت دده په مرض کې ختم شو او ښځه د ايلاء په وجه بائنه شوه او دعدت په دوران کې خاوند وفات شونو دا ښځه به وارثه نه وي ولې چې ايلاء په منزله دهغه طلاق کې ده کوم چې په څه زمانه تيريدلو پورې معلق وي نو ګويا خاوند وويل چې کله څلور مياشتې تيرې شې نو ته په بائن طلاق طلاقه يې او دصحت په حالت کې دطلاق دمعلق کولو په صورت کې که خاوند وفات کيږي نو ښځه وارثه نه وي.

## بَابُ الرَّجْعَةِ

### داباب درجعت په بيان کې دی

رجعت دراء په فتحه او کسره دی مګر په فتحه سره ويل يې افصح دی درجع يرجع له باب ضرب څخه دي معنى يې ده راګرځيدل ويل کيږي الى الله مرجعک دالله تعالى طرف ته ستار اګرځيدل دي. اودشريعت په اصطلاح کې د ملک نکاح (کوم چې دعدت په دوران کې قائم دی) برقرار ساتلو ته رجعت ويل کيږي.

درجعت ثبوت په کتاب الله، سنت رسول الله او اجماع دري واړو سره دی، دالله تعالى ارشاد دی﴿وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ﴾ په حديث شريف کې راغلي دي چې نبى کريم ﷺ حضرت عمر ﷺ ته وفرمايل چې مرابنک فليراجعها، اوپر صحت رجعت دامت اجماع هم ده.

ددي باب له ماقبل سره مناسبت دادی چې رجعت څرنګه چې له طلاق څخه طبعامؤخر دی په دي وجه يې وضعا او ذکرا هم مؤخر کړ تر څو وضع له طبع سره مطابقه شي، اورجعت له طلاق څخه طبعا ځکه مؤخر دی چې رجعت دسبب حرمت يعنى طلاق درفع کولو لپاره مشروع شوی دی اورفع هميشه له وقوع څخه وروسته وي.

(۱۴۱)هِيَ اسْتِدَامَةُ الْقَائِمِ فِي الْعِدَّةِ وَتَصِحُّ إِنْ لَمْ يُطَلِّقْ ثَلَاثًا وَلَوْ لَمْ تَرْضَ (۱۴۲)بِرَاجَعْتُكِ أَوْ رَاجَعْتُ امْرَأَتِي وَبِمَا يُوجِبُ حُرْمَةَ الْمُصَاهَرَةِ (۱۴۳)وَالْإِشْهَادُ مَنْدُوبٌ إِلَيْهَا

**ترجمه**: رجعت هغه ملک لره برقرار ساتل دي کوم ملک چې قائم دی دعدت په زمانه کې او صحيح دی په عدت کې که يې دري طلاقه نه وو ورکړي که څه هم ښځه راضى نه وي، (په دي الفاظو سره) ماتاته رجوع وکړه ماخپلې ښځې ته رجوع وکړه او په هغو افعالو سره کوم چې واجبوي حرمت مصاهرت، او ګواه جوړول مستحب دي پر رجعت باندي.

**تشريح** :(۱۴۱)مصنف رحمه الله درجعت شرعی تعریف بیان کړی دی چې ملک نکاح لره دښځې په عدت کې بدستورقائم ساتلونوم رجعت دی ،مثلاخاوند خپلې ښځې ته يويادوه رجعی طلاقه ورکړل چې له هغه څخه ښځه عدت تیروي دعدت په دوران کې خاونددي لره بیرته په خپل ملک کې ساتل وغوښتل ، نوځرنګه چې دطلاق رجعی په وجه ملک نکاح نه زائلیږي ولی چې ارشادباری تعالی دی﴿وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ﴾باری تعالی له طلاق رجعی څخه وروسته مطلّق ته بعل ویلی دی، بعل زوج ته ویل کیږي له طلاق څخه وروسته مطلّق ته دزوج له ویلوڅخه معلومیږي چې ملک نکاح قائم دی لهذادهمدي ملک دقائم ساتلونوم په شریعت کې رجعت د ی .هودرجعت لپاره شرط دادی چې خاوندبه دي ته دري طلاقه نه وي ورکړي ولی چې له دري طلاقه ورکولوڅخه وروسته خوښځه پرده په حرمت غلیظه سره حرامیږي لهذااسې ښځې ته رجوع کول متصورنه دی .اودرجوع کولوپروخت دښځې رضاهم شرط نه ده ولی چې تراوسه نکاح قائمه ده .

(۱۴۲)دمصنف رحمه الله قول براجعتک جارمجرورمتعلق دی په وتصح پوري ،ای وتصح بقول الزوج راجعتک وراجعت امرأتی الخ ،رجعت په قول اوفعل دواړوسره کیدای شي ،رجعت قولی لکه خاوندچې ووایې راجعتک (ماتاته رجوع وکړه )که ښځه حاضره وي ،اوراجعت امرأتی(ماخپلې ښځې ته رجوع وکړه )که ښځه غائبه وي ،داالفاظ ځرنګه چې په رجعت کې صریح دي ځکه دنیت محتاج نه دي،اورجعت فعلی هرهغه فعل دی چې په هغه سره حرمت مصاهرت ثابتیږي لکه دخاوندله دي سره وطی کول ،مچه اخیستل ،په شهوت سره مس کول ،اوفرج داخل ته په شهوت سره کتل اوهرهغه عمل چې په هغه سره حرمت مصاهرت ثابتیږي په هغه سره رجعت هم ثابتیږي ،مګررجعت فعلی ځرنګه چې مکروه دی په دي وجه له دي څخه وروسته مراجعت قولی مستحب دی .

(۱۴۳)خاوندلره مستحب دی چې په رجعت دوه ګواهان جوړکړي یعنی دوومسلمانونارینه وته ووایې چې تاسې ګواه اوسئ ماخپلې ښځې ته رجوع کړي ده ،دادي لپاره ترڅوپه اینده کې دانکارنوبت رانه شي .که خاوندګواه جوړنه کړل نوهم رجعت صحیح دی ولی چې رجعت دنکاح برقرارساتلونوم دی اودنکاح برقرارساتلولپاره شهادت شرط نه دی لهذادرجعت لپاره هم شهادت شرط نه دی ،دمصنف په قول علیهاکې ضمیردرجعت طرف ته راجع دی ای الاشهادمندوب علی الرجعة .

(۱۴۴)ولوقال بعد العدة راجعتک فیها فصدقته صح(۱۴۵)وإلا لا(۱۴۶)کراجعتک فقالت مجیبة مضت عدتي(۱۴۷)ولوقال زوج الأمة بعد العدة راجعت فیها فصدقه سیدها وکذبته او قالت مضت عدتي وأنکرا فالقول لها

**ترجمه** :اوکه خاوندوویل له عدت څخه وروسته ماتاته رجوع کړي وه په عدت کې اوښځې تصدیق وکړده نوداصحیح دی که نه نو نه دی ،مثلاوی ویل ماتاته رجوع کړي ده ښځې په ځواب کې وویل زماعدت تیرشو ،اوکه وویل دمینځې خاوندله عدت څخه وروسته ماتاته رجوع کړي وه په عدت کې اودده تصدیق وکړدمینځې مولی اومینځې په خپله دده تکذیب وکړیایې وویل چې زماعدت تیرشواوخاونداومالک انکاروکړنوقول به دښځې معتبروي .

**تشريح** :(۱۴۴)که له عدت تیریدلو څخه وروسته خاوند خپلې ښځې ته وویل ماتاته په عدت کې رجوع کړې وه او ښځې د زوج تصدیق وکړ نو رجعت ثابتیږي ولی چې په تصادق سره نکاح ثابتیږي نو رجعت خو په طریقه اولی سره ثابتیږي.

(۱۴۵)قوله والالای وان لم تصدقه المراة لاتصح الرجعة ،یعنی که په مذکوره بالاصورت کې ښځې دخاوند تکذیب وکړ نو دښځې قول به معتبروي وجه داده چې خاونددا سې شئ خبرورکړی دی چې دهغه انشاء دي فی الحال نه شي کولی نو دی په دي کې متهم دی او دمتهم قول مردوددی .مګرڅرنګه چې دښځې په تصدیق کولو سره دزوج تهمت لیري کیږي په دي وجه دتصدیق په صورت کې رجعت ثابتیږي.

ف:دښځې دانکارپه صورت کې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدپرښځې قسم نشته او دصاحبینو په نزدبه ښځې ته قسم ورکول کیږي .داله هغو اتو مسائلو څخه ده چې په هغو کې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزداستحلاف نشته ،دصاحبینو قول راجح دی لمافی ردالمحتار:۲/۵۷۷.والفتوی علی انه یحلف فی الاشیاء السبعة وفی الدرالمختار:(ولاتحلیف فی نکاح)انکره هواوهی(ورجعة) جحدهاهواوهی بعدعدة.........الی ان قال والحاصل ان المفتی به التحلیف فی الکل الافی الحدود(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲/۴۷۲)

(۱۴۶)قوله کراجعتک الخ ای قول الزوج لامراته راجعتک فقالت مجیبة الخ ،یعنی که خاوند خپلې ښځې ته وویل ماتاته رجوع کړې ده ښځې متصلاً په ځواب کې ورته وویل زماعدت تیرشوی دی نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدرجعت صحیح نه دی ولی چې ښځه دعدت دانقضاء په خبرورکولو کې امینه ده نو کله چې داخبروکوي چې عدت له رجوع څخه وړاندي تیرشوی دی نورجعت صحیح نه دی ځکه چې له عدت تیریدلو څخه وروسته رجعت معتبرنه دی.

ف:دصاحبینو په نزدپه مذکوره صورت کې رجعت صحیح دی ولی چې رجعت دعدت زمانه وموندہ ولی چې په په استصحاب حال سره ظاهریږي چې عدت باقی ده ترڅوچې ښځه دعدت دتیریدلو خبرورنه کړي نومعلومه شوه چې دخاوندرجوع کول وړاندي دی او دښځې دعدت تیریدلو خبرورکول وروسته دی اودعدت په زمانه کې رجعت صحیح دی. دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الهندیة :لوقال لهاراجعتک فقالت المراة موصولابکلام الزوج انقضت عدتی لم تصح الرجعة فی قول ابی حنیفة وعندهماتصح الرجعة کذافی الخانیة والصحیح قول ابی حنیفة(۱/۴۷۰)

(۱۴۷)که دمینځې خاونددي دعدت له تیریدلو وروسته وویل چې ماتاته په عدت کې رجوع کړې ده ،دمینځې مولی دده تصدیق وکړ او خپله مینځې دده تکذیب وکړیامینځې دخاوندرجوع کولو پروخت وویل چې زماعدت تیرشوی دی او وج او مولی انکاروکړنو په دي دووصورتونو کې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدمینځې قول معتبردی یعنی رجعت نه ثابتیږي ولی چې رجعت حکم په بقاء عدت او انقضاء عدت باندي مبنی دی اودعدت په بقاء او انقضاء کې دښځې قول معتبردی نوکوم شئ چې پرعدت مبنی وي (یعنی رجعت )په هغه کې به هم دښځې قول معتبروي.

ف:دصاحبینو په نزدمولی قول معتبردی.یعنی رجعت ثابتیږي ولی چې له عدت تیریدلو څخه وروسته دبضع منافع د مولی مملوک دي نوخاوندله دمنافع بضع اقرارکول خالص دخپل حق اقرارکول دي

نو داداسې ده لکه چې مولی پر خپله مینځه دنکاح اقرار وکړي مثلاً وواېي چې ما دخپلې مینځې له فلان سره نکاح وکړه نو په دې اقرار کې دمولی قول معتبر دی.

ف :دامام ابوحنیفه ﷫ قول راجح دی لماقی الهدیة :اذاقال زوج الامة بعدالقضاء عدتهاقدکنت راجعتک وصدقه المولی وکذبته الامة فالقول قولها وقالا القول قول المولی والصحیح قول ابی حنیفه (الهدیة: ۱/۴۷۰)

(۱۴۸) وَتَنْقَطِعُ إِنْ طَهُرَتْ مِنَ الْحَيْضِ الْآخِرِ لِعَشَرَةٍ وَإِنْ لَمْ تَغْتَسِلْ وَلِأَقَلَّ لَا حَتَّى تَغْتَسِلَ أَوْ يَمْضِيَ وَقْتُ صَلَاةٍ (۱۴۹) أَوْ تَتَيَمَّمَ وَتُصَلِّيَ (۱۵۰) وَلَوْ اغْتَسَلَتْ وَنَسِيَتْ أَقَلَّ مِنْ عُضْوٍ تَنْقَطِعُ وَلَوْ عُضْوًا لَا

**ترجمه** :او منقطع کیږي عدت که ښځه پاکه شوه له اخیري حیض څخه پر لسو ورځو اګرچه غسل یې نه وي کړی او له لسو ورځو څخه په لږ کې نه ترڅو چې غسل وکړي یا تیر شي دلمانځه وخت ،یاتیمم وکړي او لمونځ اداء کړي ،او که ښځې غسل وکړ او هیره یې شوله یو عضو څخه کم نو منقطع کیږي او که یو عضو وو نو نه منقطع کیږي .

**تشریح** :(۱۴۸)که په پوره لسو روځو دازادې ښځې داخیري حیض یعنی دریم حیض او دمینځې ددوهم حیض وینې منقطع شوې نو رجعت منقطع شواو دښځې عدت ختم شو که څه هم ښځې غسل نه وي کړی ،او که له لسو روځو څخه په کم کې وینې منقطع شوې نو محض دوینو په انقطاع سره رجعت نه منقطع کیږي ترڅو چې هغه ښځه غسل وکړي یا پردې دلمانځه وخت تیر شي ولې چې درجعت منقطع کیدل موقوف دې په عدت تیریدلو پورې او دعدت تیریدل موقوف دی له دریم حیض څخه په فارغیدلو پورې او له دریم حیض څخه فارغیدل موقوف دي په حصول طهارت پورې ،نو که ایام حیض پوره لس ورځې وي نو طهارت په محض انقطاع دم سره حاصلیږي په دې وجه چې حیض له لسوورځو څخه دزیادت احتمال نه لري لهذا دلسوورځو پوره کیدلو په صورت کې محض دوینې په منقطع کیدلو سره دې ښځې لره له حیض څخه فراغت حاصلیږي او ددې عدت هم ختمیږي او درجعت حکم به هم منقطع کیږي خواه که غسل وکړي او که یې نه وکړي .او له لسو ورځو څخه په کم کې که ددریم حیض وینه منقطع شوه نو څرنګه چې په دې صورت کې دوینې دراګرځیدلو احتمال شته څکه نو ضروري ده چې دانقطاع دم حکم مؤکد کړای شي په غسل کولو باندې او یا دپاکو ښځو له احکامو څخه دکوم حکم پردې لازمیدلو باندې مثلاً کله چې پردې ښځې دلمانځه وخت تیر شو نو دالمونځ ددې پرذمه دین شو او دا دپاکو ښځو له احکامو څخه دی نو کله چې له دې امورو څخه په یو امر انقطاع دم مؤکد شي نو دا به کمل کیږي چې ددې عدت تیر شو .

(۱۴۹)همداشان که دمعتده رجعیه ددریم حیض وینه له لسوورځو څخه کمه منقطع شوه بیا دعذر په وجه دې ښځې تیمم ووا هه او لمونځ یې اداء کړ خواه که فرض وي او که نفل نو دشیخینو په نزد استحساناً رجعت منقطع شو یعنی درجعت انقطاع به په تیمم او لمانځه دواړو سره وي ولې چې تیمم په حقیقت کې ملوث دی نه مطهر لیکن شریعت دضرورت په اساس (ترڅو واجبات دده پرذمه څو چنده نه شي )دتیمم دمطهر والی اعتبار کړی دی نو ضرورت داداء صلوة پروخت متحقق کیږي نه له دې څخه وړاندې لهذا بغیر اداء صلوة به دطهارت تیمم اعتبار نه وي .

**ف:** دامام محمد رحمه الله په نزد په محض تیمم وهلو سره هم رجعت منقطع کیږي ولې چې دضرورت په وخت کې تیمم طهارت مطلقه دی چنانچه په تیمم سره هغه ټول احکام ثابتیږي کوم چې په غسل سره ثابتیږي لهذا کوم حکم چې دغسل دی هغه به دتیمم هم وي .دامام محمد رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمختار:(ولاقل لا)تنقطع (حتی تغتسل)..........(او)حتی (تیمم)عندعلم الماء (ولایصلی)ولونفلاکامة :قال العلامة ابن عابدین :وقال محمدتنقطع بمجردالتیمم وهوالقیاس لانه طهارة مطلقة ورجحه فی الفتح واقره فی البحروالنهر (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار: ۵۷۸/۲)

(۱۵۰)که له لسو ورځو څخه په کمو کې دوینې دمنقطع کیدلو څخه وروسته ښځې غسل وکړاودبدن څه حصه یې هیره شوه چې په هغه یې اوبه نه کړي توی نو که هغه حصه له یوه عضو څخه کمه وه نو رجعت منقطع کیږي .او که هغه حصه له یو عضو یا له عضو څخه ډیره وه نو رجعت نه منقطع کیږي ولې چې دغسل نه کولو په وجه سره عدت باقي دی ،دا حکم استحساناً دی وجه داستحسان په عضو کامل اومادون العضو کې وجه دفرق ده چې له عضو څخه کم دقلت په وجه زر اوچیږي خاص کرچې ګرمې ډیره وي نو دې حصې ته داوبو دنه رسیدلو یقین نه شي کیدای بلکه کیدای شي چې هغه حصه دې پرېمنځل شوي وي مګرزر دې اوچه شوي وي ځکه نو موږ په احتیاط په عمل کولو سره وویل چې درجعت حکم منقطع شو.ددې په خلاف که عضو کامل وچ پاتې شونو درجعت حکم نه منقطع کیږي ولې چې عضو کامل زر نه اوچیږي اوعادتاً له عضو کامل څخه انسان غافل هم نه شي پاتې کیدای لهذا همدا به ویل کیږي چې تراوسه یې داحصه نه ده پرېمنځلې او کله چې داسې شونو دغسل دنامکمل والي په وجه سره عدت باقي ده .

(۱۵۱)وَلَوْ طَلَّقَ ذَاتَ حَمْلٍ اَوْ وَلَدٍ وقال لم أَطَأْهَا رَاجَعَ (۱۵۲)وَإِنْ خَلَا بِهَا وقال لم أُجَامِعْهَا ثُمَّ طَلَّقَهَا لَا (۱۵۳)وَإِنْ رَاجَعَهَا ثُمَّ وَلَدَتْ بَعْدَهَا لِأَقَلَّ مِنْ عَامَيْنِ صَحَّتْ تِلْكَ الرَّجْعَةُ (۱۵۴)إِنْ وَلَدْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ فَوَلَدَتْ ثُمَّ وَلَدَتْ مِنْ بَطْنٍ آخَرَ فَهِيَ رَجْعَةٌ (۱۵۵)كُلَّمَا وَلَدْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ فَوَلَدَتْ ثَلَاثَةً فِي بُطُونٍ فَالْوَلَدُ الثَّانِي وَالثَّالِثُ رَجْعَةٌ

**ترجمه** :او که خاوند طلاق ورکړ حامله ښځې ته یادهغې بچی پیداشوا وخاوند وویل چې ما وطی نه ده کړي له دې سره نو رجعت کولی شي ،او که یې خلوت وکړ او وي ویل چې ما وطی نه ده کړي له دې سره بیا یې طلاق ورکړ نو نه ،او که خاوند رجوع وکړه دې ته بیا دې بچی پیدا شو له دې څخه وروسته تر دوه کاله په لږ وخت کښې نو صحیح ده هغه رجوع، (خاوند وویل)که تا بچی وزیږاوونو ته طلاقه یې نو هغې یو بچی وزیږاوو بیا یې یو بل بچی وزیږاوو له بل بطن څخه نو دا رجعت دی،(که خاوند وویل )کله چې هم ته ماشوم وزیږوې نو ته طلاقه یې نو دې درې ماشومان وزیږول له جلا جلا بطن څخه نو دوهم او دریم ماشوم سبب رجعت دی .

**تشریح** :(۱۵۱)که خاوند خپلې ښځې ته طلاق ورکړ او حال داچې دده دا ښځه حامله وه یا له طلاق څخه وړاندې دنکاح په وخت دې ماشوم زیږولی وو په دې شرط چې دنکاح او ولادت په منځ کې دومره وخت تیرشوی وو چې په هغه کې ددې دماشوم زیږیدل متصور وو یعنی لږ تر لږه شپږ میاشتې تیرې شوې وي ، حال داچې داکس وایي چې ما له دې سره جماع نه ده کړې نو دې کس لره درجعت اختیار شته ولې کله چې حمل په دو ه مده کې ظاهر شو چې له خاوند څخه دهغه علوق ممکن دی نو هغه دخاوند شمارل کیږي ولې چې دنبي کریم ﷺ ارشاد دی چې «الولدللفراش»(ماشوم دفراش دی )نو دماشوم نسب له دې خاوند څخه ثابت شونو دی ـه وطی کوونکی شمارل کیږي او کله چې وطی ثابته شوه نو ملک مؤکد شو یعنی دښځې مدخول بها والې

ثابت شوا ومدخول بهاته که طلاق ورکړل شونوهغې ته رجوع کول صحيح ده لهذاخاوندلره درجعت اختيارشته ،پاتې شودده داقول چې ماجماع نه ده کړي نوهغه دشريعت له طرفه ددرواغ ګڼلوپه وجه باطليږي.

(۱۵۲)اوکه خاوندله خپلې ښځې سره خلوت صحيحه (خلوت صحيحه هغه دی چې زوجين په تنهائي کې سره يوځای شي اوله جماع څخه هيڅ قسم مانع موجودنه وي )وکړيايې وويل چې ماله دي سره جماع نه ده کړي بيايې دي ته طلاق ورکړ نواوس به دده لره درجوع کولواختيارنه وي ولې چې ملک نکاح په وطې سره مؤکدکيږي اودوطې دنه کولوده اقرارکړی دی نودده په حق کې به دده داقرارتصديق کيږي اورجعت دده حق دی لهذادرجعت دحق په باطلولوکې به دده قول معتبروي .

(۱۵۳)قوله فان راجعهاثم ولدت بعدهاالخ ای ان طلقهابعدماخلابهاوقال لم اجامعهاثم راجعهاالخ ،يعنی که له خلوت صحيحه څخه وروسته ده وويل چې ماجماع نه ده کړي بيايې خپلې ښځې ته رجوع وکړه (سره له دې چې ده لره دمراجعت حق نه وو)بيادې ښځې دطلاق له وخت څخه ددووکالوترپوره کيدلوورانديې ماشوم وزيږاوونودخاونددارجعت صحيح شوولې چې ددې ماشوم نسب له ده څخه ثابتيږي ځکه چې ښځې دعدت دتيريدلواقرارنه ده کړی اوماشوم تردوه کاله پوري دمورپه نس کې اوسيدلی شي نوداکس قبل الطلاق واطی شمارل کيږي نه بعدالطلاق ولې چې مسلمان حرام کارنه کوي .

(۱۵۴)قوله وان ولدت فانت طالق الخ ای لوقال الزوج لامرأته ان ولدت فانت طالق الخ ،يعنی که چاخپلې ښځې ته وويل ان ولدت فانت طالق (که تاماشوم وزيږاوونوته طلاقه يې )بياهغې يوماشوم وزيږاوواوبيايې شپږمياشتې وروسته په بل حمل سره دوهم ماشوم وزيږاوونوداودوهم ماشوم ولادت دخاوندله طرفه رجعت دی ولې چې دولداول په ولادت سره طلاق واقع شوځکه چې شرط موجودشو ،اوس دوهم ماشوم دعدت په دوران کې پيداکيږي ولې چې ښځې دعدت دتيريدلواقرارنه ده کړی اودعدت په دوران کې وطی کول رجعت دی .

(۱۵۵)که چاخپلې ښځې ته وويل کلماولدت فانت طالق (کله چې هم ته ماشوم وزيږوي نوته طلاقه يې )اوس هغې عليحده عليحده په دري ځلې حمل سره دري ماشومان وزيږول نوددوهم ماشوم زيږدل په اول طلاق کې اوددريم ماشوم زيږيدل په دريم طلاق کې رجعت شمارل کيږي ولې چې دشرط مطابق داول ماشوم له زيږيدلوڅخه وروسته يوطلاق واقع شومګرکله چې ددوهم ماشوم حمل واخيستل شونوداله اول طلاق څخه رجعت شمارل کيږي بياچې يې کله دوهم ماشوم وزيږيدی نودشرط مطابق دوهم طلاق واقع شومګرکله چې دريم حمل متقررشونوداله دوهم طلاق څخه رجعت شمارل کيږي بياچې کله دريم ماشوم وزيږيدی نواوس دامطلقه مغلظه شوه لهذاله دي څخه وروسته خاونددرجوع کولوحق نه لري ،بياهم که ددي ماشوم زيږي په بل بطن سره نوپه دي سره رجعت نه ثابتيږي ولې چې له دري طلاقه وروسته رجعت متصورنه دی ،اودماشوم نسب هم له دي کس څخه نه ثابتيږي ځکه چې ده لره له دي ښځې سره وطی کول حرامه ده .

(۱۵۶)والمطلقة الرجعية تتزين (۱۵۷)وندب ان لايدخل عليها حتى يؤذنها (۱۵۸)ولاينسافربها (۱۵۹)والطلاق الرجعي لايحرم الوطء

**ترجمه**: او مطلقه رجعيه دځان ښائسته کوي ،او خاوندلره مندوب ده چې داخل نه شي پردې ترڅو چې دې ته اطلاع ورکړي ،او نه دې په سفربيايې دا ترڅو چې دې ته رجوع وکړي ،او رجعی طلاق نه حراموي وطی.

**تشريح**: (۱۵۶) کومې ښځې ته چې طلاق رجعی ورکړل شوی وي هغې ته په کار ده چې خپل خاوندته خپل ځان ښائسته کړي ولی چې ددوئ په منځ کې زوجيت قائم دی او رجعت مستحب دی او تزين دهغه داعی دی لهذا تزين مشروع دی، مګر دا هغه وخت دی چې دخاوند درجوع کولو اميدوي او خاوند حاضر وي نو که درجعت اميد نه وو يا خاوند غائب وو نو بيا دې ښځه تزيين نه کوي.

(۱۵۷) که دښځې دخاوند درجوع کولو اراده نه وه نو ده لره مستحب ده چې له اطلاع ورکولو بغير يا دبوټو دا وازله او رولو بغير ښځې ته ورنه شي ولی چې ښځه ډيروخت په کورکې ځان لڅوي نو دخاوند نظر به داسې ځای لګيدلی شي چې په هغه سره رجعت ثابتيږي بيا به طلاق ورکوي نو بلا وجه به دښځې عدت اوږدشي.

(۱۵۸) او ترڅو چې مطلقه رجعيه ته مراجعت ونه کړي هغه دې له ځان سره په سفرنه بيايې ، دامام زفر رحمه الله په دې کې اختلاف دی دده په نزد مطلقه رجعيه په سفربيول جائزده دده دليل دادی چې له طلاق رجعی څخه وروسته هم ددوئ په منځ کې نکاح قائمه ده لهذا د غير مطلقه منکوحې په شان دا هم په سفربيول جائزده .زموږ دليل دادی چې دباری تعالی دا قول ﴿ولاتخرجوهن من بيوتهن الاية﴾ دمطلقه رجعيه په باره کې نازل شوی دی.

(۱۵۹) طلاق رجعی وطی نه حراموي ولی چې طلاق رجعی ملک نکاح نه زائلوي همدا وجه ده چې دښځې له رضا څخه بغير خاوند دې ته مراجعت کولی شي وقال الله تعالی ﴿وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ﴾ باری تعالی له طلاق رجعی څخه وروسته مطلِّق ته بعل ويلی دی او بعل زوج ته ويل کيږي له طلاق څخه وروسته مطلِّق ته له زوج ويلو څخه څرګنديږي چې ملک نکاح قائم دی.

**ف**: امام شافعی رحمه الله فرمايې چې طلاق رجعی وطی حراموي ولی چې دجواز وطی لپاره دملک نکاح قائم والی شرط دی حال دا چې ملک نکاح دطلاق په وجه سره زائل شو لهذا له طلاق رجعی وروسته وطی جائزه نه ده.

## فَصلٌ فِيمَا تَحِلُّ بِهِ المُطَلَّقَةُ

مصنف رحمه الله له دې څخه وړاندې دمراجعت هغه صورتونه بيان کړل چې په هغوسره دطلاق رجعی تدارک کيدای شي ،په دې فصل کې هغه صورتونه بيانوي چې دهغوپه ذريعه سره له طلاق رجعی څخه دماسوا طلاقونو تدارک کيدای شي.

(۱۶۰) وَيَنكِحُ مُبَانَتَهُ فِي العِدَّةِ وَبَعدَهَا (۱۶۱) لَا المُبَانَةَ بِالثَّلَاثِ لَو حُرَّةً وَبِالثِّنتَينِ لَو أَمَةً حَتَّى يَطَأَهَا غَيرُهُ (۱۶۲) وَلَو مُرَاهِقًا (۱۶۳) بِنِكَاحٍ صَحِيحٍ وَتَمضِيَ عِدَّتُهُ (۱۶۴) لَا بِمِلكِ يَمِينٍ وَكُرِهَ بِشَرطِ التَّحلِيلِ لِلأَوَّلِ

**ترجمه**: اونكاح كولى شي له خپلې بائنه سره په عدت كې اوله عدت څخه وروسته، نه هغه چې داپه دري طلاقوسره بائنه شوې وي كه ازاده وه اوپه دووسره كه مينځه وي ترڅوچې وطى وكړي له دي سره بل، كه څه هم هغه مراهق وي، په نكاح صحيح سره اوددې عدت تيرشي، نه په ملك يمين سره، اومكروه ده دحلالولوپه شرط سره كه څه هم هغه حلاليږي داول لپاره.

**تشريح**: (۱۶۰)كه خاوندله دريوڅخه كم يوياد وه بائن طلاقه وركړي وي نوخاوندلره اختياردى كه يې خوښه وي نوله دي معتدي سره دي په عدت كې نكاح وكړي ياوروسته له عدت څخه ولې چې ښځه محل نكاح ده اوحلت محل تراوسه باقي دى ولى چې دحلت زوال په دريم طلاق پوري معلق دى اومعلق بالشرط له وجودشرط څخه وړاندې معدوم وي نوكله چې حلت محل ثابت شونوخاوندلره په نكاح كول هم حلال وي.

(۱۶۱)قوله لاالمبانة بالثلث لوحرة اى لاينكح المبانة بالطلقات الثلاث الخ، يعنى كه خاوندخپلې ازادې ښځې ته دري طلاقه وركړل ياپې مينځې ښځې ته دوه طلاقه وركړل نودا ښځه خاوندته حلاله نه ده ترڅوچې له بل خاوندسره صحيح نكاح وكړي (له بل خاوندسره نكاح صحيح شرط ده) اوهغه پردې دخول هم وكړي بيادې ته طلاق وركړي ياوفات شي اوښځه عدت تيركړي نواوس له دې سره دوهم ځل نكاح كول صحيح ده لقوله تعالى ﴿فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِن بَعْدُ حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ (يعنى بياله دوه طلاقه وروسته كه خاونددريم طلاق وركړي نومطلقه دې خاوندلره حلاله نه ده ترڅوچې له بل خاوندسره نكاح وكړي) اوله نكاح كولوڅخه مراددبل خاوندله دې سره وطى كول مراد ده.

(۱۶۲)قوله ولومراهقااى ولوكان الغيرصبياقريبامن البلوغ، يعنى له دري طلاقه وروسته مطلق لره مطلقه هغه وخت حلاليږي چې داله بل كس سره نكاح وكړي كه څه هم هغه كس كوم مراهق (قريب البلوغ ماشوم وهوالذى تتحرك آلته ويشتهى الجماع وقدره شمس الائمة بعشرسنين) هلك وي نوكه مراهق هلك له مطلقه ثلاثه سرنكاح وكړه اووطى يې وكړه نودى دزوج اول لپاره په حلالولوكې دبالغ په حكم كې دى ولى چې له مراهق سره په نكاح صحيح سره وطى متحققه شوه اودتحليل لپاره همدا شرط ده انزال شرط نه دى.

(۱۶۳)قوله بنكاح صحيح اى حتى يطأالمبانة بالثلاث زوج اخربنكاح صحيح، يعنى له مطلقه ثلاثه سره دمطلق نكاح كول صحيح نه ده ترڅوچې هغه له بل خاوندسره صحيح نكاح ونه كړي اوهغه پردې دخول هم وكړي بيادې ته طلاق وركړي ياوفات شي اوښځه عدت تيركړي نواوس له دې سره دوهم ځل نكاح كول صحيح ده لقوله تعالى ﴿فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِن بَعْدُ حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ (يعنى بياله دوه طلاقه وروسته كه خاونددريم طلاق وركړي نومطلقه دې خاوندلره حلاله نه ده ترڅوچې له بل خاوندسره نكاح وكړي).

(۱۶۴)قوله لابملك يمين اى لاتحل له المبانة بالثلاث اذاوطيهاغيره بملك يمين، يعنى كه چا خپلې ښځې (كومه چې دبل چامينځه ده) ته دوه طلاقه وركړل بياله عدت تيريدلوڅخه وروسته ددې مينځې مولى له دې مينځې سره وطى وكړه نودا ښځه زوج اول لره حلاله نه ده ولى چې دزوج وطى كول په نص سره ثابته ده وهوقوله تعالى ﴿حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ اومولى زوج نه دى لهذا دمولى په وطى كولوسره مطلقه ثلاثه زوج اول ته نه حلاليږي.

**الغاز**: اى مطلقة ثلاثا دخل بها الثاني ولم تحل؟

**فقل**: اذا كان العقد فاسدا (الاشباه والنظائر)

(۱۶۵) كه چا دبل له مطلقه مغلظه سره بشرط تحليل نكاح وكړه يعني ترڅو چې دا دزوج لپاره حلاله شي او دنكاح كولو په وخت داسې ووايې چې اتزوجک على ان احللک له (زه له تاسره نكاح كوم ترڅو تا دزوج لپاره حلاله كړم) نو دا نكاح مكروه تحريمي ده ﴿لحديث رسول الله ﷺ لعن الله المحلل والمحلل له﴾ (يعني الله دې لعنت وكړي په حلاله كونكي باندې او په هغه دچاد پاره چې حلاله كيږي) ليكن كه ده له دې سره دوطى كولو وروسته دې ته طلاق وركړ نو زوج ته حلاليږي ولى چې دمحلل نكاح هم صحيح ده او دخول هم موجود شو او دتحليل لپاره نكاح صحيح او دخول شرط دى.

**ف**: دامام شافعي رحمه الله په نزد بشرط تحليل نكاح فاسده ده همدا يو روايت له امام ابويوسف رحمه الله څخه هم دى ولى چې دا دنكاح موقت په معنى ده ګويا محلل دې ښځې ته وايې ماله تاسره ترفلانى وخته نكاح كړي ده او نكاح موقت فاسده ده نو نكاح بشرط تحليل هم فاسده ده او كله چې نكاح بشرط تحليل فاسده ده نو په داسې نكاح سره مغلظه ښځه هم نه حلاليږي ولى چې دحلال والى لپاره نكاح صحيح شرط ده.

(۱۶۶) وَيَهْدِمُ الزَّوْجُ الثَّانِي مَادُونَ الثَّلَاثِ (۱۶۷) وَلَوْ أَخْبَرَتْ مُطَلَّقَةُ الثَّلَاثِ بِمُضِيِّ عِدَّتِهِ وَعِدَّةِ الزَّوْجِ الثَّانِي وَالْمُدَّةُ تَحْتَمِلُهُ لَهُ أَنْ يُصَدِّقَهَا إِنْ غَلَبَ عَلَى ظَنِّهِ صِدْقُهَا

**ترجمه**: او ختموي زوج ثاني له دريو څخه كم طلاقونه، او كه خبرور كړ دري طلاقو والا ښځې د اول او دهم زوج دعدت دتيريدلو او مدت دهغه احتمال لاره نو زوج لره جائزه ده چې ددې تصديق وكړي كه دده غالب ګمان وودې درشتيا ويلو.

**تشريح**: (۱۶۶) كه چا خپلې ازادې ښځې ته يو يا دوه طلاقه وركړل ښځې عدت تير كړله دې څخه وروسته هغې له بل خاوند سره نكاح وكړه او دوهم خاوند هم دې ته طلاق وركړ ښځې له عدت تيرولو وروسته بيرته له اولنى خاوند سره نكاح وكړه نو زوج ثانى يو يا دوه طلاقه منهدم كوي لهذا ابنځه اولنى خاوند ته په دريو طلاقو سره بيرته راځي يعني اولنى خاوند بيرته ددريو طلاقو مالک دى. دشيخينو په نزد زوج ثانى دري طلاقه په دې ډول منهدم كوي لكه څرنګه چې دري طلاقه منهدم كوي ولى كله چې دري طلاقه منهدم كوي نو له دريو څخه كم خو په طريقه اولى سره منهدم كوي همدا دحضرت ابن عباس، حضرت ابن عمر او اصحاب ابن مسعود ﷺ قول دى. دامام محمد رحمه الله په نزد زوج ثانى له دريو طلاقونو څخه كم نه منهدم كوي بلكه دا ښځه كه زوج اول ته بيرته راغله نو دى به دمابقى من الثلث مالک وي همدا دحضرت على، حضرت عمر، حضرت ابى ابن كعب، حضرت عمران بن حصين او حضرت ابوهريره ﷺ قول دى.

**ف**: دشيخينو قول راجح دى لمافى الدر المختار: (والزوج الثانى يهدم بالدخول ..... مادون الثلاث ايضا) .... وعند محمد وباقى الائمة بمابقى وهو الحق فتح واقره المصنف كغيره، وقال ابن عابدين تحت (قوله اقره المصنف كغيره) اى صاحب البحر والنهر والمقدسى والشرنبلالى الى ان قال لكن المتون على قول الامام واشار فى متن الملتقى الى ترجيحه ونقل ترجيحه العلامة قاسم عن جماعة من اصحاب الترجيح. (الدر المختار مع الشامية: ۵۸۹/۲.) وفى الهندية: ويهدم الزوج الثانى الطلقة والطلقتين كما يهدم الثلاث كذافى الاختيار شرح المختار وهو الصحيح كذافى المضمرات (الهندية: ۴۷۵/۱)

(۱۶۷)که چاخپلې ازادې ښځې ته درې طلاقه ورکړل له څه وخت تیریدلو څخه وروسته ښځې وویل چې زماعدت تیرشوی دی اوماله بل خاوندسره نکاح وکړه هغه پرمادخول وکړاوماته یې طلاق راکړاوماعدت هم پوره شواوحال دادی چې ښځه چې کومه مده بیانوې دامده داسې ده چې ددې ټولوخبرو احتمال هم لري نو اولنی خاوندته جائزده چې دی ددې ښځې تصدیق وکړي په دې شرط چې غالب ګمان به یې دښځې درشتیاویلووي ولې چې نکاح معامله ده یاامردینې دی ،معامله خوځکه ده چې بضع ددخول په وخت کې متقوم وي ،اوامردینې ځکه دی چې له نکاح سره حلت تعلق نیسي اوپه دې دواړوکې خبرواحدمقبول دی .

## بَابُ الْإِيلَاءِ

دباب دایلاء په بیان کې دی

ایلاء له آلی یولی ایلاء څخه ده په معنی دقسم خوړولو ،اوشرعاًڅلورمیاشتې یازائدخپلې منکوحې ته دنه ورنژدې کیدلو قسم خوړلوته ویل کیږي .

دباب الایلاء له ماقبل سره مناسبت دادی چې دښځې تحریم په څلوروطریقوسره کیږي یعنی طلاق ،ایلاء ،ظهار ،لعان ،په دې څلوروکې ترټولو وړاندې طلاق ذکرشوولې چې طلاق په تحریم کې اصل دی اوپه خپل وخت کې مباح دی ،بیاایلاء ذکرشوه ځکه چې ایلاء په اباحت کې طلاق ته قریبه ده ولې چې دادیمین والی په حیثیت سره مشروع ده مګرپه دې کې دښځې دوطی دحق دمنع کولوپه وجه سره دظلم معنی هم شته په دې وجه یې له طلاق څخه مؤخره کړه .

(۱)هو الْحَلِفُ على تَرْكِ قُرْبَانِهَا أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ او أَكْثَرَ كَقَوْلِهِ وَاللَّهِ لَا أَقْرَبُكِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ او وَاللَّهِ لَا أَقْرَبُكِ (۲)فَإِنْ وَطِئَ في الْمُدَّةِ كَفَّرَ وَسَقَطَ الْإِيلَاءُ (۳)وَإِلَّا بَانَتْ (۴)وَسَقَطَ الْيَمِينُ لو حَلَفَ على أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ وَبَقِيَتْ لو على الْأَبَدِ

**ترجمه** :ایلاء قسم خوړل دي په ترک صحبت له ښځې سره ترڅلورومیاشتویاتردې زائدوخت پورې لکه دخاوندقول والله زه به تاته قریب نه شم ترڅلورومیاشتوپورې یاوالله زه به تاته قریب نه شم ،نوکه دوطی وکړه په مدت کې نوکفاره به ورکړي اوساقطیږي ایلاء ،که نه نو بائنه کیږي ،اوساقطیږي قسم که یې قسم خوړلی وو پرڅلورومیاشتواوباقي پاتې کیږي که یې دقسم دهیمشه لپاره خوړلی وو .

**تشریح** :(۱)مصنف رحمه الله دایلاء شرعي تعریف بیان کړی دی چې څلورمیاشتې له دې څخه زیات له خپلې ښځې سره دصحبت نه کولو دقسم خوړلونوم ایلاده مثلاًڅوک خپلې ښځې ته ووایي والله زه به څلورمیاشتې تاته درنژدې نه شم یابغیرله ذکرد څلورومیاشتوداسې ووایي والله زه به تاته درنژدې نه شم نوله دې ویلوڅخه وروسته داشخص ایلاء کوونکی شو لقوله تعالی ﴿لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِن نِّسَائِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ﴾ یعنی کوم خلک چې له خپلوښځوڅخه ایلاء کوي دهغویٔ لپاره دڅلورومیاشتوانتظاردی )دباری تعالی له دې ارشادڅخه معلومه شوه چې دایلاء مدت څلورمیاشتې دی ولې که له څلورمیاشتوڅخه زیات یاکم وای نودڅلورومیاشتودتنصیص به هیڅ فائده نه وای .

(۲)که خاوند په مدت ایلاء یعنی څلورمیاشتې کې دننه له دي ښځې سره وطی وکړه نوپه خپل قسم کې حانث کیږي دمحلوف عنه فعل دارتکاب په وجه سره اوپرخاوند کفاره یمین وجیبږي اوایلاء ساقطیږي ،دسقوط ایلاء مطلب دادی چې که څلورمیاشتې تیري شې نوطلاق نه واقع کیږي ولی چې دحانث کیدلوپه وجه سره یمین باقی نه پاتې کیږي اودیمین نوم ایلاء دی نوکله چې یمین باقی پاتې نه شونوایلاء هم باقی نه پاتې کیږي .

(۳)قوله والابانت ای وان لم یطاها فی اربعة اشهر حتی مضت بانت المراة منه بتطلیقة واحدة ،یعنی که خاوندایلاء په مده کې ښځې ته ورنژدي نه شوترڅوچې څلورمیاشتې تیري شې نودابنځه پرده په یوه طلاق سره بائنه کیږي ولی چې خاونددښځې دجماع دحق په منع کولوسره پردي ظلم وکړنوشریعت خاوندته دده دظلم بدله داسې ورکړه چې دایلاء دمدت په تیریدلوسره یې نعمت نکاح زائل کړ.

(۴)اویمین ساقطیږي که ده دڅلورومیاشتودننه نزدیکت قسم خوړلی وو ولی چې یمین دڅلوروو میاشتوپه مده پوري موقت وو لهذاددي مدت دتیریدلووروسته یمین باقی نه پاتې کیږي بلکه ساقطیږي اوکه ده همیشه لپاره دنه نزدیکت قسم خوړلی وو نوکه څلورمیاشتې بلاوطی تیري شوي نوپرښځې یوطلاق بائن واقع کیږي اوقسم باقی پاتې کیږي ولی چې په دي صورت کې قسم په کوم وخت پوري مقیدنه دی لهذادایمین موبددی اودموجب حنث (یعنی وطی )دنه وجودپه وجه سره خاوندحانث هم نه شوترڅویمین مرتفع شوی وای لهذایمین پرخپل حال باقی پاتې کیږي .

(۵)وَلَوْ نَكَحَهَا ثَانِيًا وَثَالِثًا وَمَضَتِ الْمُدَّتَانِ بِلَا فَيْءٍ بَانَتْ بِأُخْرَيَيْنِ (۶)وَلَوْ نَكَحَهَا بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ لَمْ تَطْلُقْ فَلَوْ وَطِئَهَا كَفَّرَ لِبَقَاءِ الْيَمِينِ (۷)وَلَا إِيلَاءَ فِيمَا دُونَ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ (۸)وَاللَّهِ لَا أَقْرَبُكِ شَهْرَيْنِ وَشَهْرَيْنِ بَعْدَ هَذَيْنِ الشَّهْرَيْنِ إِيلَاءٌ (۹)وَلَوْ مَكَثَ يَوْمًا ثُمَّ قَالَ وَاللَّهِ لَا أَقْرَبُكِ شَهْرَيْنِ بَعْدَ الشَّهْرَيْنِ الْأَوَّلَيْنِ (۱۰)اوقال وَاللَّهِ لَا أَقْرَبُكِ سَنَةً إِلَّا يَوْمًا (۱۱)اوقال بِالْبَصْرَةِ وَاللَّهِ لَا أَدْخُلُ مَكَّةَ وَهِيَ بِهَا لَا

**ترجمه** :اوکه یې له دي سره نکاح وکړه دوهم ځل یادریم ځل اوتیري شوي دواړه مدي بلارجوع نوبائنه کیږي په آخیري دووسره ،بیاکه یې نکاح وکړه له دي سره له دوهم خاوندڅخه وروسته نوطلاق نه واقع کیږي اوکه یې له دي سره وطی وکړه نوکفاره دي ورکړي دبقاء قسم په وجه سره ،اوایلاء نشته ترڅلورو میاشتوڅخه په کم کې ، (دخاونددا قول )والله تاته نه درنژدي کیږم دوه میاشتې اودوه میاشتې له دي دوومیاشتووروسته نوایلاء ده ،اوکه وځنډیدویوورځ بیایې وویل والله زه تاته نه درنژدي کیږم دوه میاشتې له اولنیودوو میاشتووروسته ،یایې وویل زه تاته نه درنژدي کیږم یوکال مګریوه ورځ ،یایې په بصره کې وویل والله زه به مکې ته داخل نه شم اودده ښځه په مکه کې ده نونشته .

**تشریح** :(۵)که خاونددهمیشه لپاره دنه نزدیکت قسم خوړلی وونویوځل له بینونت اوعدت تیریدلو څخه وروسته که ایلاء کونکې بیاله دي ښځې سره نکاح وکړه نوایلاء هم واپس راګرځي (نوکه ده دایلاء په مدت کې وطی وکړه نوقسم مات شواودقسم کفاره لازمیږي اوایلاء ختمیږي )اوکه یې وطی ونه کړه نودڅلورومیاشتوپه تیریدلوسره بل طلاق واقع کیږي بیاکه یې دریم ځل له دي سره نکاح وکړه نوایلاء بیرته راګرځي او دڅلورومیاشتوپه تیریدلوسره طلاق واقع کیږي، په دي شرط چې په دي مدت کې له ښځې سره وطی ونه کړي ،په مخکنی دلیل کې تیرشوچې قسم د مطلق عن الوقت کیدلوپه وجه سره اوس هم باقی دی

اوپه نكاح كولوسره دښځې حق جماع ثابت شولهذادزوج له طرفه دجماع په منع كولوسره ظلم متحقق شونوپه بينونت سره به ده ته سزاء وركول كيږي لهذا په دوهم اودريم ځل دطلاق په واقع كيدلوسره دا ښځه مطلقه مغلظه شوه .

(۶) اوس څرنګه چې ښځه ددريوطلاقوپه وجه سره مغلظه شوه نوكه له زوج ثاني څخه له حلاله كولووروسته بيامولی (ايلاء كونكې )له دې سره نكاح وكړه نوايلاء باطله شوه لهذادسابقه ايلاء په وجه طلاق نه واقع كيږي ولی چې ايلاء صرف په اولنی ملک پوري مقيده وه ،البته يمين باقی پاتې دی ولی چې يمين مطلق عن الوقت دی اودوطی دنه كولوپه وجه حانث والی هم نه ده موجودشوی نوكه ده له دې ښځې سره وطی وكړه نودخپل قسم كفاره به وركوي ولی چې قسم يې مات كړ.

(۷)كه چاله څلورومياشتوڅخه كم خپلې ښځې ته دنه نزديكت قسم وخوړی مثلاوي ويل والله لااقربک شهرااوشهرين اوثلاثة اشهر (والله زه به له تاسره يوه مياشت يادوه مياشتې يادري مياشتې صحبت ونه وكړم )نو داكس ايلاء كونكی نه دی لقول ابن عباس ﷺ لاايلاء فيمادون اربعة اشهر(يعنی له څلورومياشتوڅخه په لږكې ايلاء نشته ).

(۸)قوله والله لااقربک شهرين وشهرين بعدهذين الشهرين ای لوقال الزوج لامرأته لااقربک شهرين وشهرين بعدهذين الشهرين يعني كه چاقسم واخيست چې والله لااقربک شهرين وشهرين بعدهذين الشهرين (والله زه به تاته درنژدې نه شم دوه مياشتې اوله ددې دوومياشتووروسته نوري دوه مياشتې )نودا ايلاء ده ولی چې ده دوه زمانې په حرف جمع (يعنی واو)سره جمع كړي نودااسې شوه لكه چې ده په لفظ جمع سره جمع كړي وي لهذاداڅلورمياشتې شماردې كه څه هم يې دوه ځايه كړي دي نوګويازوج وويل والله لااقربک اربعة اشهر(والله زه به څلورمياشتې تاته درنژدې نه شم ).

(۹)اوكه خاوندوويل والله لااقربک شهرين (والله زه به تاته درنژدې نه شم دوه مياشتې )بيايوه ورځ يايې څه وخت انتظاروكړبيايې وويل والله لااقربک شهرين بعدالشهرين (والله له دوواولنيو مياشتووروسته دوه نوري مياشتې به زه تاته درنژدې نه شم )نودا ايلاء نه ده ولی كومې دوه مياشتې چې ده نوري زياتې كړي دانوی ايجاب دی لهذا په دواړه ځله كې مدت يعنی دڅلورومياشتودنه پوره كيدلوپه وجه داايلاء نه ده .

ف:قاعده داده چې كه حالف له حرف عطف وروسته حرف نفي اواسم باری تعالی نه راګرځاوو نودايو قسم دی مذكوره ټوله زمانه دده لپاره ده مثلاچاوويل والله لااكلم زيدايومين ويومين نودايوقسم شمارل كيږي اومانه يې څلورورځې ده. اوكه يې له حرف عطف څخه وروسته حرف نفی اواسم باری تعالی راوګرځاوونودادوه قسمه دي اوددواړوپه زمانه كې به تداخل كيږي مثلاچاوويل والله لااكلم زيدايومين ولايومين يايې وويل والله لااكلم زيدايومين والله لااكلم زيدايومين نوپه دې ـ ووصه رتونو كې دوه دوه قسمه دي اوددواړوقسمولپاره زمانه يوه ده حتی كه ده اوله يادوهمه ورځ خبري وكړي نودده پرذمه دوه كفاري لازميږي اوكه يې دريمه ورځ خبره وكړه نونه حانث كيږي ولی چې ديمين زمانه تيره شوه .

(۱۰)قوله اوقال لااقربک سنة الايوما اى لوقال الزوج لامرأته لااقربک سنة الايوما لايکون موليا،يعنى كه خاوند وويل والله لااقربک سنة الايوما(والله زه به يوورځ كم يوكال تاته درنژدې نه شم)نوداكس ايلاء كونكى نه شمارل كيږي ولى چې ايلاء كونكى هغه وي كوم چې له لزوم كفاري بغيرله خپلې ښځې سره وطى نه شې كولى حال داچې دلته دا ممكنه ده چې وطى وكړي او كفاره لازمه نه شي ولى چې كومه ورځ چې ده مستثنى كړې ده هغه نكره ده نوداكس دكال په هرو څلورو مياشتو كې په كومه ورځ وغواړي وطى كولى شې ددي استثنى په وجه پرده هيڅ نه لازميږي لهذا دايلاء زمانه پوره نه ده لهذا داكس مولى نه ده .

ف:دامام زفر رحمه الله په نزد مذكوره بالاقائل ايلاء كونكى شمارل كيږي او مستثنى ورځ به دكال اخيري ورځې ته راجع كيږي داداسې ده لكه چې څوک چاته ووايې اجرتک دارى سنة الايوما(ماتاته خپل كوريوه ورځ كم دكال لپاره په كرايه دركړى دى)نومستثنى يوه روځ به دكال اخيري ورځې ته راجع كيږي.امام زفر رحمه الله ته ځواب وركړل شوى دى چې په اجاره كې دمدت دمجهول والى په وجه سره اجاره نه صحيح كيږي نودصحت اجاري لپاره مستثنى ورځ دكال اخيري ورځې ته راجع كيږي ترڅو داجاري مدت معلوم شې په خلاف ديمين چې هغه دجهالت زمانې باوجودصحيح دى نوپه دي كې دمستثنى ورځې دكال اخيري ورځې ته دراجع كولوضرورت نشته .

(۱۱)همداشان كه خاوندپه بصره كې وي مثلااوده ښځه په مكه كې وي خاوند وويل والله لاادخل مكة (والله زه به مكې ته داخل نه شم)نوهم داكس مولى نه دى ولى چې په مدت كې دننه له لزوم كفاره بغيرددې كس له خپلې ښځې سره وطى كول ممكن ده په دې دول چې ښځه له مكې مكرمې څخه باهرراوباسي اوله دې سره جماع وكړي .

(۱۲)وَإِنْ حَلَفَ بِحَجٍّ اَوْ صَوْمٍ اَوْ صَدَقَةٍ اَوْ عِتْقٍ اَوْ طَلَاقٍ اَوْ آلٰى مِنَ الْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِيَّةِ فَهُوَ مُولٍ (۱۳)وَمِنَ الْمُبَانَةِ وَالْأَجْنَبِيَّةِ لَا (۱۴)وَمُدَّةُ اِيْلَاءِ الْأَمَةِ شَهْرَانِ (۱۵)وَاِنْ عَجَزَ الْمُوْلِيْ عَنْ وَطْئِهَا بِمَرَضِهِ اَوْ مَرَضِهَا اَوْ بِالرَّتْقِ اَوْ بِالصِّغَرِ اَوْ بِبُعْدِ مَسَافَةٍ فَفَيْئُهُ اَنْ يَقُوْلَ فِئْتُ اِلَيْهَا (۱۶)وَاِنْ قَدَرَ فِي الْمُدَّةِ فَفَيْئُهُ الْوَطْءُ

**ترجمه** :كه چاقسم واخيست دحج يادروژې يادازادكولويادطلاق يايې ايلاء وكړه له مطلقه رجعيه څخه نودى ايلاء كونكى دى ،اوله بائنه او اجنبيه څخه ايلاء نه كيږي ،اودمينځې دايلاء زمانه دوه مياشتې ده ، اوكه عاجزه شوايلاء كونكى له وطى كولو څخه دخپل مرض په وجه يادښځې دمرض په وجه يادشرمگاه دبندوالى په وجه يادكم عمرى په وجه يادبعد مسافت په وجه نودده رجوع داده چې ووايې مارجوع كړې ده دې ته ،اوكه قادرشوپه مدت كې نودده رجعت په وطى سره دى .

**تشريح** :(۱۲)كه چادحج قسم وخوړى مثلاوي ويل ان قربتک فعلى حج البيت (كه ماله تاسره صحبت وكړنوپرما حج بيت الله لازم دى)يايې دروژې قسم وخوړى يعنى وى ويل ان قربتک فعلى صوم سنة (كه ماله تاسره صحبت وكړنوپرماديوه كال روژې لازمې دي)اويايې دصدقې قسم وخوړى مثلاوي ويل ان قربتک فعلى صدقة (كه ماله تاسره صحبت وكړنوپرماصدقه لازمه ده)يايې دعتق رقبه قسم وخوړى مثلاوى ويل ان قربتک فعبدى حر(كه ماله تاسره صحبت وكړ نوزما غلام ازاددى ) يايې دطلاق قسم وخوړى مثلا وي ويل ان قربتک فضرتک طالق (كه ماله تاسره صحبت وكړنوستابن طلاقه ده )،نوپه دې ټولو صورتونوكې داكس مولى

شمارل كيږي ولى چې دقسم يعنى شرط اوجزاء دذكركولوپه وجه سره له وطى څخه منع متحققه شوه اوداجزاء ګانې يعنى حج اوروژه وغيره مانع عن ارتكاب الشرط دي ولى چې په دي ټولوجزاء ګانوكې مشقت دى ځكه كله چې دشرط ارتكاب وكړي نوجزاء يقيناواقع كيږي اوپه وقوع جزاء كې مشقت دى لهذاجزاء مانع عن الشرط وي نوپه دي ټولوصورتونوكې له ښځې سره له وطى كولوڅخه منع متحققه شوه اودښځې له وطى څخه منع كيدلوته ايلاء ويل كيږي لهذاپه دي ټولوصورتونوكې ايلاء متحققه شوه نوكه څلورمياشتې زمانه بغيرله وطى تيره شوه نوپردي ښځه يوبائن طلاق واقع كيږي ،همداشان كه چاله خپلې مطلقه رجعيه څخه ايلاء وكړه نودبقاء زوجيت په وجه داكس ايلاء كونكى شمارل كيږي .

(۱۳)قوله ومن المبانة والاجنبية لااى لو آلى من المطلقة طلاقابائناوهى فى العدة ومن الاجنبية لايكون موليا،يعنى كه چاله خپلې مطلقه بائنه څخه ايلاء وكړه نودكس ايلاء كونكى نه شمارل كيږي ولى چې زوجيت باقى نه دى ولى چې وروسته له بينونت څخه ښځې ته دوطى حق نشته نوخاونددښځې دحق مانع هم نه شولهذاايلاء نه شوكېلى چې دي كس ته دطلاق جزاء وركړل شي ،همداشان كه چاله اجنبيه ښځې څخه ايلاء وكړه نوداكس مولى نه دى ولى چې اجنبيه دايلاء محل نه دى ځكه چې په نص سره ثابته ده چې ايلاء له خپلې ښځې څخه كيداى شي لقوله تعالى﴿الذين يؤلون من نسائهم تربص اربعة اشهر﴾(يعنى كوم خلګ چې له خپلو ښځوڅخه ايلاء كوي ددوئ لپاره څلورمياشتې انتظاردى )په ايت مباركه كې دمن نسائهم په قيدسره له اجنبيه ښځې څخه احترازوشوچې له اجنبيه ښځې څخه ايلاء نشې كيداى .

(۱۴)كه دچاښځه مينځه وي نودهغې دايلاء مده دوه مياشتې ده ولى چې دايلاء مده دبائنه كيدلولپاره مقرره شوي ده نودرقيت په وجه به نيمايې پاتې كيږي لكه چې دمينځې دعدت زمانه ازادي ښځې دعدت دزمانې نصف ده ،دامام شافعى رحمه الله په نزددمينځې دايلاء زمانه هم څلورمياشتې ده ، ولى چې دامده دخاونددظلم داظهارلپاره مقررشوى دى په كوم كې چې ازاده اومينځه دواړه برابردي .

(۱۱۵)كه مولى دناروغۍ په وجه په جماع كولوقادرنه وويابښځه ناروغه وه يارتقاء وه (دكومې چې فرج دهډوكې ياغيره دپيداكيدلوپه وجه سره بندوي )ياكوچنۍ وه دجماع قابله نه وه اويادزوجينو ترمنځ دومره مسافت وي چې خاوند دڅلورومياشتوپه مدت كې دي ته نه شورسيدلى نوپه دي ټولوصورتونوكې خاوندلره درجوع بالقول اخيتاردى نوكه خاوندپه مدت ايلاء كې فئت اليها (ماددي طرف ته رجوع وكړه )وويل ،يايې وويل ابطلت الايلاء (يعنى ماايلاء باطله كړي ده )يايې وويل رجعت عماقلت (ماچې څه ويلې وماله هغه څخه رجوع وكړه )نوايلاء ساقطيږي اورجوع ثابتيږي ولى چې خاونددعجزپه وجه دښځې دجماع دحق منع كونكى دى دده اراده دضرررسولونه ده ولى چې ددي اعذاروپه وخت كې ښځې لره دجماع حق نه شته البته په ژبانې ايلاء كړ اوسره ښځه په وحشت كې مبتلاء كړي ده اوځرنګه چې توبه بحسب الجنايت وي لهذاپه ژبه سره په وعده كولوښځې لره راضى كول كافى دى اوكله چې په ژبانى وعدي سره ظلم مرتفع شونوپرښځې په طلاق واقع كولوسره خاوندته سزانه شي وركول كيداى .

(۱۶)او که دا کس په مدت ایلاء (یعنی څلور میاشتې کې دننه) په جماع قادر شو نو ده زباني رجوع باطلېږي اوس به حقیقة په جماع کولو سره رجوع کوي ولی چې له حصول مقصود بالخلف څخه وړاندي دا کس په اصل قادر شو نو دا داسې دی لکه چې کوم متیمم کس دلمانځه له اداء کولو څخه وړاندي پر او داسه قادر شي نو د ده تیمم ختمیږي .

(۷ )أَنتِ عَلَيَّ حَرَامٌ إِيلاءٌ إِنْ نَوَى التَّحْرِيمَ أَو لَمْ يَنْوِ شَيئًا (۱۸ )وَظِهَارٌ إِنْ نَوَاهُ (۱۹ )وَكَذِبٌ إِنْ نَوَى الْكَذِبَ (۲۰ )وَبَائِنَةٌ إِنْ نَوَى الطَّلَاقَ وَثَلَاثٌ إِنْ نَوَاهُ (۲۱ )وَذُكِرَ فِي الْفَتَاوَى إِذَا قَالَ لِامْرَأَتِهِ أَنتِ عَلَيَّ حَرَامٌ وَالْحَرَامُ عِنْدَهُ طَلَاقٌ وَلَكِنْ لَمْ يَنْوِ طَلَاقًا وَقَعَ الطَّلَاقُ وَجُعِلَ نَاوِيًا عُرْفًا

**ترجمه**:(دخاوند قول )ته پر ما حرامه یې ایلاء ده که یې دتحریم نیت کړی وو یا یې هیڅ نیت نه وکړی ، او ظهار دی که یې نیت کړی وو دظهار ،او دروا غ دي که یې نیت کړی وو ددرواغو ،او بائنه ده که یې دطلاق نیت کړی وو او درې طلاقه دي که یې ددریو طلاقو نیت کړی وو ،او په فتاوی کې شته چې کله خاوند خپلې ښځې ته وو ایې ته پر ما حرامه یې او حرام دده په نزد دطلاق په معنی دی لیکن ده نیت نه وي کړی دطلاق نو واقع کیږي طلاق او دی عرفا نیت کونکی شمارل کیږي .

**تشریح** :(۱۷)که چا خپلې ښځې ته وویل انت علی حرام (ته پر ما حرامه یې )نو له دي کس څخه به دنیت پوښتنه وشي ولی چې دده دا کلام دځو معنی ګانو احتمال لري دکومې یوي دمتعین کولو لپاره به دقائل دنیت معلومات کول کیږي نو که قائل وویل چې ما دښځې دحرامولو نیت کړی دی یا هیڅ هم اراده نه وي وکړي نو دا ایلاء ده ولی چې دحلالو په حرامولو کې اصل دا دی چې یمین وي قال الله تعالی﴿لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ﴾ بیا یې فرمایلي﴿قَدْ فَرَضَ اللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ﴾ نو معلومه شوه چې حلال حرامول یمین دی کله چې دا ثابته شوه چې دقائل قول یمین دی نو ددې په وجه سره به دي مولی وي نو په څلورو میاشتو کې که یې وطی وکړه نو دقسم کفاره به ورکوي که نه نو له څلورو میاشتو وروسته به ښځه دایلاء په وجه سره بائنه شي .

(۱۸)که قائل وویل چې ما دظهار نیت کړی وو نو دشیخینو په نزد دا ظهار دی ولی چې قائل په خپل کلام کې دحرمت لفظ مطلق ذکر کړی دی او ظهار هم دحرمت یوه نوع ده او په مطلق کې دمقید احتمال وي لهذا کله چې قائل دمحتمل نیت کړی دی نو دده تصدیق به کیږي ،او دامام محمد رحمه الله په نزد ظهار نه دی ولی چې ظهار حلالې ښځې ته له محرمې سره تشبیه ورکولو ته ویل کیږي لهذا په ظهار کې تشبیه ورکول رکن دی او دلته دحرف تشبیه د نه وجود په وجه سره تشبیه موجود نه ده ځکه نو ظهار هم نه دی .

(۱۹)او که قائل وویل چې ما ددرواغو نیت کړی وو نو همدا شان به وي څرنګه چې دی وایې ولی چې ده په خپل کلام سره دحقیقي معنی اراده کړې ده ولی چې دا ښځه ده لره حلاله ده نو انت علی حرام له واقع سره مطابق نه ده لهذا درواغ دي او دکلام دحقیقي معنی نیت کول شرعاً معتبر وي ،لیکن دځینو حضراتو رأیه داده چې دده تصدیق به نه کیږي ځکه چې دا په ظاهر کې قسم دی .

(۲۰)که قائل وویل چې ما دطلاق نیت کړی وو نو یو بائن طلاق واقع کیږي ،او که یې ددریو نیت کړی وي نو درې واقع کیږي ولی چې انت علی حرام له کنایاتو څخه دی په کوم سره چې دیو بائن نیت کول هم صحیح دی او ددریو نیت کول هم صحیح دی دکوم تفصیل چې په باب الکنایات کې تیر شو .

(۲۱)مصنف رحمه الله فرمايي چې په فتاوى كې راغلي دي چې كه چاخپلې ښځې ته وويل انت علي حرام(ته پرماحرامه يې) اودده په نزدحرام دطلاق په معنى وي مگرده دطلاق نيت نه وي كړى نوطلاق واقع كيږي دعرف په لحاظ سره دى نيت كونكى شمارل كيږي ولى چې نن صبادطلاق واقع كولو لپاره همدا جمله ويل كيږي چې ته برماحرامه يې .

## بَابُ الْخُلْعِ

### داباب دخلع په بيان كې دى

خلع بضم الخاء لغة دفصل ،ايسته كولو او ايستلو په معنى ده ،ويل كيږي خلع نعله اذا نزعه او اسم دى ده خالعت المرأة زوجها او اختلعت منه بماله ،اوشرعاً له ښځې په لفظ خلع سره دنكاح په مقابله كې مال اخيستلو ته ويل كيږي.

كه دزوجينو ترمنځ جنجال پيدا شو او داېې محسوسه كړه چې اوس دالله تعالى حدود يعنى ديوبل حقوق زوجيت نه شي اداء كولى نو په دي كې هيڅ مضائقه نشته چې ښځه دخپل ځان په بدله كې خاوند ته فديه وركړي او خاوند دى مال په بدله كې له دي سره خلع وكړي لقوله تعالى ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ﴾ (يعنى په دوئ دواړو هيڅ گناه نشته چې ښځه ده ته فديه وركړي ).

ددي باب له ماقبل سره مناسبت دادى چې ايلاء له مال څخه دخالي والي په وجه اقرب الى الطلاق ده او په خلع كې دښځې له طرف څخه مال وي ځكه يې له طلاق سره متصل ايلا او بيا خلع ذكر كړه ، همدا راز دايلاء سبب دخاوند له طرفه دنشوز او نفرت اظهار دى او دخلع سبب غالبادښځې له طرفه نشوز دى .

(۲)الْوَاقِعُ بِهِ وَبِالطَّلَاقِ على مَالٍ طَلَاقٌ بَائِنٌ وَلَزِمَهَا الْمَالُ (۳) وَكُرِهَ لَهُ أَخْذُ شَيْءٍ إنْ نَشَزَ (۴) وَإِنْ نَشَزَتْ لَا (۵) وماصَلَحَ مَهْرًا صَلَحَ بَدَلَ الْخُلْعِ

**ترجمه** :خلع له نكاح څخه دعليحده كيدلو نوم دى ،او واقع كيږي خلع او طلاق على المال سره طلاق بائن اولازميږي په ښځه باندي مال ،او مكروه ده خاوندلره څه اخيستل كه نشوزدخاوندله طرفه وو ،او كه نشوز دښځې له طرفه وو نونه دى ،او كوم شئ چې دصالح وي دمهرجوړيدلو هغه صالح دى دخلع لپاره هم.

**تشريح** :(۱)مصنف رحمه الله دخلع شرعى تعريف كړى دى چې له نكاح څخه عليحده كيدل خلع ده ،مگر په دي كې يې دخلع لفظ او دمال ذكر نه ده كړى حال دا چې دخلع لفظ ضروري دى ولى چې صرف دمال په عوض كې طلاق وركولو ته خلع نه ويل كيږي ،هو دمال په عوض كې په طلاق وركولو سره دخلع په شان بائن طلاق واقع كيږي ،نوصحيح تعريف دادى چې دڅه په اخيستلو سره په لفظ خلع سره نكاح ختمولو ته خلع ويل كيږي ،دخلع هغه شرطونه دي كوم چې دطلاق دي چې خاوندبه مكلف وي او ښځه به منكوحه وي او حكم يې دطلاق بائن واقع كيدل دى ،او خلع دخاوندله طرفه يمين دى او دښځې له طرفه معاوضه ده لهذا دخاوندله طرفه به ديمين داحكامو رعايت كيږي او دښځې له طرفه به دمعاوضې داحكامو رعايت كيږي .

(۲)کله چې خاوند دفدیه په اخیستلوسره خلع وکړي نوپرښځه یو طلاق بائن واقع کیږي ولی چې لفظ خلع له کنایات طلاق څخه ده اوپه کنایه الفاظوسره بائن طلاق واقع کیږي ،همداشان که خاوندخپلې ښځې ته دمال په عوض کې طلاق ورکړمثلاوي ویل انت طالق علی الف درهم (یعنی ته طلاقه یې په عوض دزرو روپو) اوښځې داقبول کړنوطلاق بائن واقع کیږي اودښځې پرذمه مال لازمیږي ولی چې ښځه له خاوندڅخه دخپل ځان دخلاصولوپه بدل عوض کې دمال په ورکولوراضی ده له ازادي څخه بغیرهغه په مال ورکولوراضی نه ده اوله طلاق بائن څخه بغیرښځه له خاوندڅخه نه ازادیږي لهذادمال په عوض کې دطلاق په صورت بائن طلاق واقع کیږي،اوپه دواړوصورتونوکې پرښځې دفدیه مال ورکول لازم دی ولی چې ښځې په خپله قبول کړی دی،همداراز مال احدالبدلین دی نوکله چې دخاوندله طرفه بدل یعنی (خلع یاطلاق )تسلیم شونوپه دواړوکې دبرابري لپاره ضروري ده چې دوهم بدل (یعنی مال )هم تسلیم شې ولی چې خاوندپردي راضی نه دی چې بضع بغیرله ماله ددملک څخه زائل شې .

(۳)که دخاوندله طرف څخه دنشوزاونفرت اظهاروو نوخاوندلره له ښځې څخه دخلع څه عوض اخیستل مکروه تحریمي ده لقوله تعالی﴿وَإِنْ أَرَدْتُمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَكَانَ زَوْجٍ وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا﴾ (اوکه تاسې دیوې ښځې پرځایدبلې ښځې دبدلولواراده وکړه حال داچې تاسې دویٔ ته ......ورکړی وي نوتاسې له دي څخه هیڅ مه اخلئ)، فلاتأخذوه منه شئاکې نهی لغیره ده اودنهی لغیره په وجه سره دمنهی عنه مشروعیت نه معدومیږي لکه دجمعې داذان پروخت اخیستل اوخرڅول ممنوع لغیره کیدلوباوجودمشروع هم دي .همداراز خاوندپه دي نیت کولوسره ښځه په وحشت کې مبتلاء کړي ده لهذادپرېښودلوپه عوض کې دمال په اخیستلودي زیات وحشت کې نه اچوي ،

(۴)قوله وان نشزت لاای ان نشزت المرأة لایکره له الاخذمنها،یعنی که دنشوزاونفرت اظهاردښځې له طرفه وونوبقدرمهرفدیه اخیستل خاوندلره بلاکراهته جائزده له دي څخه زیات اخیستل مکروه ده ولی چې دثابت بن قیس بن شماس ﷺ ښځې له ثابت بن قیس ﷺ سره خلع کول وغوښتل نونبی کریم ﷺ دي ته وویل ته دده عوض واپس کوي ؟هغې وویل هو،څه زیات لاهم ورکوم ،نبی کریم ﷺ وفرمایل اماالزیادة فلا ،یازیادت مه ورکوه ،لیکن که خاونددمهرله مقدارڅخه زیادت واخیست نوقضاء جائزده لاطلاق قوله تعالی﴿ فلاجناح علیهمافیماافتدت به﴾.

(۵)کوم شی چې په عقدنکاح مهرجوړیدلی شې هغه بالاتفاق په عقدخلع کې بدل خلع جوړیدلی شې ولی چې دعقدنکاح پروخت بضع متقوم ده اودخلع پروخت غیرمتقوم ،لهذاکوم شئ چې دبضع متقوم عوض جوړیدلی شي هغه په طریقه اولی دبضع غیرمتقوم لپاره عوض کیدای شي .

(۶) فَإِنْ خَالَعَهَا أَوْ طَلَّقَهَا بِخَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ أَوْ مَيْتَةٍ وَقَعَ بَائِنٌ فِي الْخُلْعِ (۷) رَجْعِيٌّ فِي غَيْرِهِ مَجَّانًا (۸) كَخَالِعْنِي عَلَى مَا فِي يَدِي وَلَا شَيْءَ فِي يَدِهَا (۹) وَإِنْ زَادَتْ مِنْ مَالٍ أَوْ مِنْ دَرَاهِمَ رَدَّتْ مَهْرَهَا أَوْ ثَلَاثَةَ دَرَاهِمَ

**ترجمه** :که خاوند خلع وکړه له ښځې سره یاطلاق ورکړښځې ته دشرابویاخنزیراویامرداریه عوض نوبائن طلاق واقع کیږي په خلع کې ،اورجعی طلاق واقع کیږي له دي څخه په علاوه کې مفت ،لکه چې ووایې خلع

وکړه زماسره بردي کوم چې زماپه لاس کې دي اوحال داچې هیڅ نشته ددي په لاس کې ،اوکه ښځې اضافه کړیامن مال یامن دراهم نوښځه به واپس کوي ده ته یاخپل مهریادري درهمه .

**تشریح** :(۶)که په خلع کې عوض باطل شومثلا مسلمان کس له خپلې ښځې سره دشرابویاخنزیر یامردارپه عوض کې خلع وکړي نودافرقت به طلاق بائن وي ولې چې کله عوض باطل شونوپه دي صورت کې عمل کونکی دخلع لفظ دی اودخلع لفظ له کنایه الفاظوڅخه دی اوپه کنایه الفاظوسره طلاق بائن واقع کیږي لهذاپرښځه بائن طلاق واقع کیږي اوپرښځه به دخاوندلپاره هیڅ شئ دخلع دبدل پړه ول واجب نه وي .

(۷)اوکه یې مدخول بهاښځې ته دمال په عوض کې غیرخلع یعنی طلاق ورکړ(اوداطلاق دریم طلاق نه وو)اوحال داچې عوض له مذکوره بالادریووجوه څخه په یوه وجه باطل وونوپرښځې طلاق رجعی مفت واقع کیږي یعنی خاوندلره به پرښځه هیڅ هم واجب نه وي ولې چې عوض باطل شونوپه دي صورت کې عمل کونکی صریح لفظ طلاق دی اوپه صریح لفظ طلاق سره رجعی طلاق واقع کیږي .

اوپه دواړومسئلوکې پرښځه هیڅ عوض په دي وجه واجب نه دی چې دعوض دواجبولودوه صورتونه دي یابه پرښځه مسمی واجبیږي اویابه غیرمسمی واجبیږي دواړه ممکن نه دي اول خوپه دي وجه چې مسلمان شراب وغیره نه چاته تسلیمولی شې اونه یې له چاڅخه قبض کولی شې اوثاني په دي وجه چې ښځې دهغه التزام نه ده کړی .

(۸)قوله کخالعنی علی مافی یدی ای یکون مجازا کمافی قول المرأة لزوجها خالعنی علی مافی یدی ،یعنی په مذکوره بالادواړو صورتونوکې خاوندلرپرښځه دهیڅ شئ نه واجبوالی داسې دی لکه چې ښځه خاوندته وواېې څه چې زماپه لاس کې دي پرهغه له ماسره خلع وکړه نوخاوندخلع وکړه اوحال داچې دښځې په لاس کې هیڅ نشته نوپرښځه هیڅ شئ نه واجبیږي ولې چې ښځې په خپل قول کې دمال ذکرنه ده کړی لهذاکله چې په لاس کې هیڅ نشته نوخاوندته دوکه ورکونکی شمارل کیږي نودکوم شئ ضامنه به هم نه وي .

(۹)اوکه ښځې په خپل قول کې دمن مال اضافه وکړه یعنی ښځې خپل خاوندته وویل چې زماپه لاس کې چې کوم مال دی پرهغه له ماسره خلع وکړه ،نوخاوندخلع وکړه مګردښځې په لاس کې هیڅ نه وو نوپه دي صورت کې به ښځه خاوندته مقدارمهرواپس کوي ولې چې ښځې په خپل قول کې دمال ذکرکړی دی په دي وجه خاوندبغیرعوض دملک نکاح په زائلولوراضی نه دی ،بیاخاوندته دعوض ورکولوڅلورصورتونه دي ،(۱)مسمی (یعنی مافی یدها)،(۲)دهغه قیمت، (۳)دبضع قیمت یعنی مهرمثل ،(۴)مقدارمهرکوم چې ښځې له خاوندڅخه اخیستی دی .اولنۍ دري واړه احتماله باطل دي ولې چې مسمی اودهغه له قیمت څخه هریومجهول دی اودبضع قیمت یعنی مهرمثل په دي وجه نه شې واجب کیدلی چې دخروج په حالت کې دبضع هیڅ قیمت نشته لهذاڅلورم احتمال یعنی مقدارمهر واجبول متعین شوترڅوله خاوندڅخه ضرردفع شې ،اوکه ښځې دمن دراهم په اضافه کولوسره وویل له ماسره خلع وکړه په دي دراهموچې زماپه لاس کي دي ،اوخاوندخلع وکړه مګردښځې په لاس کې هیڅ نه وو نوپه دي صورت

كې پرښځه دري دراهمه واجب دي ولی چې ښځې دراهم دجمع په صيغه سره ذكركړي دي اودجمع اقل فرددري دي ځكه به دري دراهمه واجب وي ،قوله اوثلثة دراهم اى ردت عليه ثلثة دراهم فى قولها خالعنى على مافى يدى من دراهم.

(۱۰)وَإِنْ خَالَعَ عَلَى عَبْدٍ آبِقٍ لَهَا عَلَى أَنَّهَا بَرِيئَةٌ مِنْ ضَمَانِهِ لَمْ تَبْرَأْ (۱۱)قَالَتْ طَلِّقْنِي ثَلَاثًا بِأَلْفٍ فَطَلَّقَ وَاحِدَةً لَهُ ثُلُثُ الْأَلْفِ وَبَانَتْ (۱۲)وَفِي عَلَى أَلْفٍ وَقَعَ رَجْعِيٌّ مَجَّانًا (۱۳)طَلِّقِي نَفْسَكِ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ اوعَلَى أَلْفٍ فَطَلَّقَتْ وَاحِدَةً لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ (۱۴)أَنْتِ طَالِقٌ بِأَلْفٍ اوعَلَى أَلْفٍ فَقَبِلَتْ لَزِمَ وَبَانَتْ

**ترجمه** :اوكه خاوند خلع وكړه دښځې په تښتيدلی غلام په دي شرط چې ښځه بری ده دهغه له ضمان څخه نونه بری كيږي، ښځې وويل ماته دري طلاقه راكړه دزرو په عوض كې خاونديو طلاق وركړنوده لره به دزروثلث وي اوښځه بائنه كيږي، اودعلی الف په صورت كې رجعی طلاق مفت واقع كيږي ، (خاوندوويل) ته خپل ځان ته طلاق وركړه دزروپه عوض ياپرزرونودي يوطلاق وركړنو هيڅ نه واجبيږي، (خاوندوويل)ته طلاقه يې دزروپه عوض ياپرزروښځې قبول كړنو پرښځه زرلازميږي اوښځه بائنه كيږي.

**تشريح** :(۱۰)كه خاوند خلع وكړه له خپلې ښځې سره ددي په تښتيدلی غلام باندي په دي شرط چې ښځه به دهغه له ضمان څخه بری وي يعنی داسې ووايې چې دغلام دنيولواوخاوندته له حواله كولو څخه زه بری يم نوهغه له ذمه داری څخه نه بری كيږي ولی چې داعقدماوضه ده كوم چې دعوض دسلامتيا مقتضی دی نودښځې دبراءت شرط لګول شرط باطل دی ولی چې داشرط دموجب عقدڅخه مخالف دی لهذاښځه به بری نه وي ،بنفسه خلع دنكاح په شان په شروط فاسده سره نه فاسديږي.

(۱۱)كه ښځې خاوندته وويل ماته دري طلاقه راكړه دزرودرهموپه بدل كې راكړه ،مګرخاوند دي ته يوطلاق وركړنو پرښځې دزرودرهمويوثلث(يعنی دري سوه درديرش درهمه اويوديوه درهم ثلث درهم) واجب وي ولی چې كله ښځې ديوزرپه بدله كې ددريوطلاقونومطالبه وكړه نوګوياهرطلاق يې ديوزری دثلث په عوض كې طلب كړولی چې لفظ باء پرعوض داخليږي اوعوض پرمعوض منقسميږي لهذازربه پردريوپه تقسيمولوسره ثلث زرلازم كيږي ،اوطلاق بائن واقع كيږي ولی چې داطلاق بعوض مال دی اوطلاق بعوض مال بائن وي.

(۱۲)قوله وفى على وقع رجعى اى فى قول المراة طلقنى ثلاثا على الف فطلقها واحدة ،يعنی كه ښځې دبالف پرځای علی الف وواياوخاونددي په ځواب كې دي ته ددريوپرځای يوطلاق وركړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزديورجعی طلاق واقع كيږي اوپرښځه هيڅ واجب نه دي ،دصاحبينوپه نزددزروپوديوثلث په بدله كې يوطلاق بائن واقع كيږي ولی چې طلاق علی مال عقدمعاوضه ده اوپه معاوضاتوكې علی دباء په حكم كې ده اودباء حكم په مخكنۍ مسئله كې تيرشو.دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې كلمه علی دشرط لپاره استعماليږي اومشروط دشرط په اجزاؤنه منقسميږي په خلاف دباء چې هغه په عوض داخليږي اوعوض پرمعوض منقسميږي ،نوكله چې دخاونديوه طلاق وركولوپه وجه دښځې پرذمه مال واجب نه شونودخاوندله طرفه وركړل شوی يوطلاق هغه طلاق نه دی دكوم چې ښځې مطالبه كړي وه بلكه دادخاوندله طرفه نوی طلاق دی اوڅرنګه چې خاوند طلاق په صريح لفظ سره وركړی دی اوپه صريح لفظ سره د طلاق وركولوپه صورت كې رجعی طلاق واقع كيږي په دي وجه به داطلاق رجعی وي.

ف:دامام ابو حنيفه رحمه الله قول راجح دی لما قال المفتی غلام قادر النعمانی :القول الراجح هو قول ابی حنيفه رحمه الله الی ان قال لكن عرف زماننا يؤيد قول الصاحبين لان العوام لايميزون بين علی وباء فی محاورتهم وخصوصا الافغانيون (القول الراجح: ۱/۳۳۵)

(۱۳) قوله طلقی نفسک ثلاثا بالف الخ ای لو قال الزوج لامرأته طلقی نفسک ثلاثا بالف الخ ،يعنی كه خاوند خپلې ښځې ته ووېل طلقی نفسک ثلاثابالف (ته خپل ځان دزرورروپو په عوض کې طلاق ورکړه )یایې ووېل طلقی نفسک ثلاثاعلی الف (ته خپل ځان ته په زرورروپو طلا ق ورکړه )نوښځې پرخپل ځان یوطلا ق واقع کړنوهیڅ نه واقع کیږي ولی چې خاوندخپلې ښځې په بینونت راضی نه دی مګرداچې خاوندته پوره یوزروسپارل شوي نوکه موږدزرورروپودثلث په عوض کې دیوه طلا ق دوقوع حکم وکړنودا دخاوندپه حق کې مضردی .

(۱۴) قوله انت طالق بالف اوعلی الف الخ ای لو قال الزوج لامرأته انت طالق بالف اوعلی الف الخ ،یعنی كه خاوند خپلې ښځې ته ووېل انت طالق بالف اوعلی الف (ته دزرورروپو په بدله کې طلاقه یې یایې ووېل ته پویوزر روپوطلاقه یې)ښځې داقبول کړنو یوزرروپۍ لازمیږي ولی چې ښځې په خپله زرروپۍ ورکول قبول کړي دي اوښځه بائنه ګرځي ولی چې داطلاق بعوض مال دی اوطلاق بعوض مال بائن وي .

(۱۵)أَنتِ طَالِقٌ وَعَلَيكِ أَلفٌ أَو أَنتَ حُرٌّ وَعَلَيكَ أَلفٌ طَلَقَتْ وَعَتَقَ مَجَّانًا(۱۶)وَصَحَّ خِيَارُ الشَّرطِ لَهَا فِي الخُلعِ لَا لَهُ(۱۷)طَلَّقتُکِ أَمسِ بِأَلفٍ فَلَم تَقبَلِي فَقَالَت قَبِلتُ صُدِّقَ(۱۸)بِخِلَافِ البَيعِ

**ترجمه**:(كه خاوند ووېل )ته طلاقه یې اوپرتازرروپۍ دي یاته ازاده یې اوپرتازرروپۍ دي نوداطلاقیږي اوغلام ازادیږي مفت ،اوصحیح دی شرط خیارښځې لره په خلع کې نه خاوندلره ،(اوكه خاوندووېل )ماتاته طلاق درکړی دی دتېول زری په بدل کې اوتاقبول کړی دی اوښځې ووېل ماقبول کړي دی نودخاوندتصدیق به کیږي ،په خلاف دبیع .

**تشريح** :(۱۵)كه چاخپلې ښځې ته ووېل انت طالق وعلیک الف (ته طلاقه یې اوپرتازرروپۍ دي )نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدیوطلاق مفت واقع کیږي اودصاحبینوپه نزدپرښځه زرروپۍ لازمي دي ولی چې داکلام علیک الف دمعاوضه لپاره استعمالیږي نوځرنګه چې خلع عقدمعاوضه ده لهذاوعلیک الف کې واودباء په معنی دی نوګویاخاوندښځې ته ووېل چې انت طالق بالف (ته طلاقه یې دزروپه عوض کې )،دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادی چې وعلیک الف مستقله جمله ده اومستقله جمله بلادلیله له ماقبل سره مربوطه نه وي اودلته له ماقبل سره په مربوط والی باندي هیڅ دلیل نشته ولی چې په عام ډول سره طلاق له مال څخه بغیروي لهذاصرف انت طالق واقع شواوانت طالق هم مفت واقع شو ،همداشان كه چاخپل غلام ته ووېل انت حروعلیک الف (ته ازادیې اوپرتازرروپۍ دي )نودامام امام ابوحنیفه رحمه الله په نزدغلام مفت ازادیږي لمامر ،اودصاحبینوپه نزدپرغلام زرروپۍ دي لمامر.

ف:دصاحبینوپرقول فتوی ده لمافی الدرالمختار:(وانت طالق وعلیک الف اوانت حروعلیک الف طلقت وعتق مجانا)الی ان قال وفی الحاوی وبقولهما یفتی (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۲/۶۱۱)

(۱۶)اوپه خلع کې ښځې لره دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدخیارشرط صحیح دی خاوندلره نه دي صحیح مثلاپه زرروپۍ یې خلع وکړه اوداشرط یې ولګاوچې تردریوورځوپوري ښځې لره دقبلولو

یاردولو اختیاردی نوداصحیح دی ولی چې دښځې له طرفه خلع تملیک المال دی اوتملیک المال دبیع په شان خیارشرط قبلوي ، لهذا که ښځې په ایام خیارکې خلع ردکړه نوطلاق نه واقع کیږي اوکه یې قبول کړه نوطلاق واقع کیږي ،او دخاوند په حق کې ځرنګه چې خلع یمین دی لهذا خیارشرط نه قبلوي . دصاحبینو په نزد ځرنګه چې خاوندلره خیار شرط صحیح نه دی همدا شان ښځې لره هم صحیح نه دی ولی چې دصاحبینو په نزد خلع ددواړو لپاره یمین دی.

(۱۷)قوله وطلقتک امس بالف الخ ای لوقال الزوج لامرأته طلقتک امس بالف الخ ،یعنی که خاوند خپلې ښځې ته وویل طلقتک امس بالف فلم تقبلی (ماتاته پرون دزرورو په بدل کې طلاق درکړ مګرتاقبول نه کړ)ښځې په ځواب کې وویل ماقبول کړی وو نوپه دې صورت کې به دخاونددقول تصدیق کیږي ولی چې طلاق بالمال دزوج له طرفه یمین دی اودښځې قبلول دحانث کیدلو لپاره شرط دی نودخاوندقول به معتبروي ولی چې هغه له وجودشرط څخه منکردی اوقول دمنکرمعتبروي .

(۱۸)په خلاف دبیع مثلاکوم چابل ته وویل چې مادغلام دزرورو په عوض پرون پرتاخرڅ کړی وو مګرتانه وقبول کړی هغه وویل ماقبول کړی وو نوله قبولیت څخه په انکارکې به دبائع دقول اعتبارنه کیږي ولی چې اقراربالبیع اقراربالقبول دی ولی چې بیع بغیرقبول نه تامیږي نواوس دبائع له قبول بیع څخه انکارکول له بیع څخه رجوع کول دي لهذا دده دقول اعتبار به نه کیږي .

(۱۹)وَيَسْقِطُ الْخُلْعُ وَالْمُبَارَأَةُ كُلَّ حَقٍّ لِكُلٍّ وَاحِدٍ عَلَى الْآخَرِ مِمَّا يَتَعَلَّقُ بِالنِّكَاحِ (۲۰)حتى لو خالَعَهَا اوبَارَأَهَا بِمَالٍ مَعْلُومٍ كان لِلزَّوْجِ ماسَمَّتْ له ولم يَبْقَ لأَحَدِهِمَا قِبَلَ صَاحِبِهِ دَعْوَى في الْمَهْرِ مَقْبُوضًا كان او غير مَقْبُوضٍ قَبْلَ الدُّخُولِ بها او بَعْدَهُ (۲۱)وَإِنْ خَلَعَ صَغِيرَتَهُ بِمَالِهَا لم يَجُزْ عليها (۲۲)وَلَوْ بِأَلْفٍ على أَنَّهُ ضَامِنٌ طَلُقَتْ وَالْأَلْفُ عليه

**ترجمه** :اوساقطوي خلع اومبارأة دزوجینو هرهغه حق کوم چې دیوه پرهغه بل باندې وي کوم چې متعلق وي له نکاح سره ،تردې چې که خاوندله ښځې سره خلع یامبارأت وکړ دمعلوم مال په عوض نوخاوندلره به هغه وي کوم چې ښځې دهغه لپاره مقررکړی دی اوباقی نه پاتې کیږي یوه لره پربل دمهردعوی اختیارخواه که مهرمقبوض وي یاغیرمقبوض له دخول څخه وړاندې وي یاوروسته ،اوکه یې خلع وکړه دخپلې نابالغې ددې دمال په عوض کې نوجائزنه ده پرنابالغې باندې اوطلاق واقع کیږي ،اوکه دزروپه عوض په دې شرط چې دی ضامن دی نوهغه طلاقیږي اوزروپې پرولی لازمیږي .

**تشریح** :(۱۹)یعنی په خلع اومبارأة (مبارأة دادی چې زوج خپلې ښځې ته ووایې چې زه دزرودراهمو په عوض ستاله نکاح څخه بری یم )کې هریوله زوجینو څخه هغه بل له هرهغه حق چې له نکاح سره متعلق وي بری کوي مثلامهراونفقه ماضیه وغیره ،دادامام ابوحنیفه رحمه الله مسلک دی ،دامام محمد رحمه الله مسلک دادی چې هرهغه حق چې زوجین یې بیان کړي ساقطیږي له دې څخه علاوه نه ساقطیږي .امام ابویوسف رحمه الله په خلع کې له امام محمد رحمه الله سره دی اوپه مبارأت کې له امام ابوحنیفه رحمه الله سره دی.

ددې اختلاف ثمره په دې مثال سره واضح کیږي چې که دښځې مهرزردرهمه وي بیاښځې له خپل خاوندسره قبل الدخول له خپل مهرڅخه په سل درهمه خلع وکړه نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدښځې لره جائزنه ده چې هغه په خپل خاوندڅه شئ رجوع وکړي ،دصاحبینو په نزدبه ښځه په خپل خاوند

دڅلورسوو درو هموڅلپاره رجوع كوي ترڅو دفرقت قبل الدخول په وجه سره ښځې لره نصف مهرورسيږي اوصرف دومره ساقطيږي څومره چې دواړوبيان كړې دي يعنى سل درهمه ،اوكه ښځې په زروقبضه وكړه بيابې په سل درهمه خلع وكړه نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدخاوندلره له سل درهمه ماسواهيڅ نشته،دصاحبينوپه نزدبه خاوندپه ښځه ددومره مقدارپه حق كې رجوع كوي چې دنصف مهرمقدار خاوندته ورسيږي (يعنى څلورسوه درهمه به له ښځې څخه زيات اخلي )اوكه په مذكوره بالاصورتونو كې زوجينومبارأت وكړنوهم دامام ابوحنيفه رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په اختلاف هم هغه دى كوم چې پورته ذكرشومگرامام ابويوسف رحمه الله په مبارأت كې له امام ابوحنيفه رحمه الله سره دى .

(۲۰)داپرماقبل مسئله تفريع ده چې په خلع اومبارات كې له زوجينوڅخه هريوهغه بل له هرهغه حق څخه كوم چې له نكاح سره متعلق وي برى كوي حتى كه خاوندله خپلې ښځې سره دمال په يومعين مقدارخلع وكړه نوخاوندته به صرف هغه وركول كيږي كوم چې ښځې دده لپاره په دې معامله كې مقرركړى دى له دې څخه علاوه په زوجينوكې به كوم يوه لره پرهغه بل دمهروغيره په باره كې هيڅ دعوى پاتې نه شي خواه كه ښځې پرمهرقبضه كړې وي اوكه يې نه وي كړې اوخواه كه دامعامله له صحبت كولوڅخه وړاندې وي ياوروسته شوې وي ،مصنف رحمه الله دمال معلوم دقيدپه لگولوسره له مال مجهول څخه احتراز وكړولى چې عوض خلع كه داسې مال وي چې په جهالت فاحشه سره مجهول وي نوداعوض به صحيح نه وي بلكه ښځې چې پرڅومره مهرباندې قبضه كړې وي هغه به واپس كوي .

(۲۱)كه چادخپلې نابالغې لوردمال په بدله كې ددې له خاوندسره خلع وكړه نوداپرانجلۍ نه لازميږي يعنى پرانجلۍ مقررمال نه لازميږي ولى چې دنابالغې انجلۍ په مال خلع كول ددې په مال دتبرع كولوپه شان دى كوم چې جائزنه ده لهذانه نافذيږي .اوپه خلع كولوسره پرنابالغه انجلۍ طلاق واقع كيږي ولى چې پرنابالغه دمال دنه واجبيدلوڅخه دانه لازميږي چې طلاق به هم واقع نه وي ، همداوجه ده چې دخلع بعوض خمركې طلاق واقع كيږي مگرواجب نه دي .

(۲۲)قوله ولوبالف على انه ضامن الخ اى لوخالعها الاب بالف درهم على انه ضامن الخ ،يعنى كه چادخپلې نابالغې انجلۍ په زروروپوخلع وكړه پردې شرط چې ددې زروروپوزه ضامن يم نوپرصغيره طلاق واقع كيږي لمامر،اودايوزرروپۍ ددې دولى پرذمه واجبيږي ولى چې دبدل خلع شرط په كوم اجنبى باندې هم صحيح دى نوپرپلارخوبه په طريقه اولى سره صحيح وي .

## بَابُ الظِّهَارِ

دا باب دظهارپه بيان كې دى

ظهارلغة مصدردى هغه وخت ويل كيږي كله چې كوم كس خپلې ښځې ته داووايې چې ته پرماداسې يې لكه زمادمورشا . اوشرعاً دمنكوحه ښځې له كومې داسې ښځې سره تشبيه وركولوته ويل كيږي كومه چې

پرده دهیمشه لپاره حرامه وي لکه مور، خور، خاله اوعمه وغیره اوخواه داحرمت ابدی نسبی وي یارضاعی وي یابوجه مصاهرت وي.

دباب الظهارله خلع سره مناسبت دادی چې دظهاراوخلع کې دهریوه وجه ظاهرانشوزاودنفرت اظهاروي بیایې خلع په ظهارپه دي وجه مقدم کړی دی چې په خلع کې تحریم زیات دی ولی چې دخلع په صورت کې دنکاح په منقطع کیدلوسره تحریم ثابتیږي ،اوپه ظهارکې دنکاح د باقی پاتې کیدلو باوجودحرمت ثابتیږي.

دظهارلپاره شرط دادی چې مشبه ښځه به په نکاح صحیح سره منکوحه وي نوله ام ولد، مدبره، قنه اومبانه څخه ظهار صحیح نه دی .اودظهاراهل هغه کس دی کوم چې دکفاري اهل وي نوذمی ، مجنون اوصبی ظهارصحیح نه دی.

(۱)هوتَشبيهُ المَنكوحَةِ بِمَحرَمٍ عليه على التأبيد (۲) حَرُمَ عليه الوَطءُ, وَدَوَاعِيهِ بِأَنتِ عَلَيَّ كَظَهرِ أُمِّي حتى يُكَفِّرَ (۳) فَلَو وَطِئَ قَبلَهُ استَغفَرَ رَبَّهُ فَقَط (۵) وَبَطنُهَا وَفَخِذُهَا وَفَرجُهَا كَظَهرِهَا (۲) وَأُختُهُ وَعَمَّتُهُ وَأُمُّهُ رَضَاعًا كَأُمِّهِ

**ترجمه** :ظهارتشبیه ورکول دي دخپلې منکوحه له داسې ښځې سره کومه چې حرامه وي پرده دهیمشه لپاه ،حرامیږي په خاوندوطی اودواعی وطی دخاوندپه دي وېناسره چې ته پرمازمادمور دشاپه شان یې ترڅوچې کفاره ورکړي ،نوکه یې وطی وکړه له کفاري څخه وړاندي نواستغفاردي وکړي له خپل رب څخه ،اودخاونددي ته له عود څخه مراددادی چې عزم وکړي له دي سره دوطی کولو ،اودښځې نس اوددی ورون اوشرمګاه ددي شاه په حکم کې دي ،دخاوندخور، عمه اورضاعی مورد حقیقي مورپه شان دي.

**تشریح** :(۱)مصنف رحمه الله دظهارشرعی تعریف بیان کړی دی چې دخپلې منکوحې له داسې ښځې سره تشبیه ورکولوته ظهاروېل کیږي کومه چې پرده دهیمشه لپاره حرامه وي لکه مور، خور، لوروغیره .په تشبیه المنکوحه کې اضافت له قبیلې داضافة المصدرالی المفعول دی ای تشبیه الزوج منکوحته.

(۲)که چاله خپلې ښځې څخه ظهاروکړمثلاخاوندووېل انت علی کظهرامی (ته پرمازمادمور دشاپه څیریې )نودده ښځه پرده حرامه شوه اوس دي کس لره نه له دي سره وطی کول حلال دي اونه مس کول اونه مچه اخیستل حلال دي ،اوښځې لره هم خاوندته پرخپل ځان قدرت ورکول حرام دي ،ترڅوچې خاونددخپل ظهارکفاره ورکړي ولی چې ظهارجنایت دی ولی چې ظهارکول ناخوښه اودرواغ خبره ده نوپه دي سره دي کس ته سزاء ورکول مناسب ده چې دده ښځه پرده حرامه کړای شي ترهغه وخت پوري چې کفاره اداء کړي اوداجرم په کفاره سره ختمیږي.

(۳)که مظاهر(ظهارکونکی )له ظهارڅخه وروسته له کفاري ورکولووړاندي له خپلې دي ښځې سره وطی وکړه نوداکس دي استغفاروکړي اوپرده دکفاره اولی ماسوا څه نورشئ نه واجبیږي ، اواوس دي وطی نه کوي ترڅوچې کفاره ورکړي ولی چې نبی کریم ﷺ یوداسې کس ته چاچې دظهارله کفاري څخه و... ي وطی کړی وه فرمایلي وو ﴿ استَغفِرِ رَبَّكَ, وَلَا تَعُد حتى تُكَفِّرَ ﴾ (یعنی له خپل رب څخه مغفرت طلب کړه اوداحرکت بیامه کوه ترڅوچې کفاره ورکړي )نوکه له استغفارڅخه ماسواکوم بل شئ واجب وای نونبی کریم ﷺ به ضرورپه هغه تنبیه ورکوله.

(۴)پر مظاهر کفاره هغه وخت واجبيږي کله چې هغه له ظهار څخه په راګرځيدلو له دې ښځې سره دوطی کولو عزم وکړي اوکه ظهارکونکی د مظاهرعنهاپه حرمت راضي وي له دې سره دوطی کولوعزم نه لري نوپر مظاهر کفاره واجب نه ده ،نوپه ايت مبارکه﴿ وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِن نِّسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا ﴾(اوکوم خلک چې له خپلو ښځوڅخه ظهارکوي بيادخپلې ويلې شوي خبري تلافی کول غواړي نوددوئ پرذمه ديوه غلام يامينځې ازادول دي )کې له عود څخه مراد د مظاهر له مظاهرمنهاسره دوطی کولوعزم دی .

(۵)دښځې نس اوددي ورون اوشرمګاه ددي دشاپه حکم کې ده يعنی که چاخپلې ښځې ته وويل انت علی کبطن امی ياکفخذامی ياکفرج امی (يعنی ته پرمازمادمورد نس په شان يې يادډي ورون ياددي دفرج په شان يې )نوداداسې دی لکه خاوندچې خپلې ښځې ته ووايې انت علی کظهرامی (ترپرماداسې يې لکه زمادمورشا)نوپه دې ټولوصورتونوکې داکس مظاهرګرځي ولی چې ظهارويل کيږي دخپلې ښځې له محرمه ابديه سره تشبيه ورکولوته اودامعنی په مذکور اعضاؤکې اوله هرهغه عضوسره په تشبيه ورکولوکې متحققه کيږی دکوم طرف ته چې کتل ناجائزوي .

(۶)دخاوندخور،عمه اورضاعی موردحقيقي مورپه شان ده يعنی که چادخپلې ښځې له خپلومحارموڅخه له داسې ښځې سره تشبيه ورکړه کوموته چې پرده په شهوت سره کتل دهيمشه لپاره حرام وي مثلاخور،عمه ،رضاعی مورو غيره نوداکس مظاهرګرځي ولی چې دابښځې به دائمي تحريم کې دمورپه څيردي .

(۷)وَرَأْسُكِ وَفَرْجُكِ وَظَهْرُكِ وَوَجْهُكِ وَرَقَبَتُكِ(۸)وَنِصْفُكِ وَثُلُثُكِ كَأَنْتِ (۹)وَإِنْ نَوَى بِأَنْتِ عَلَيَّ مِثْلُ أُمِّي بِرًّا اَوْ ظِهَارًا اَوْ طَلَاقًا فَكَمَا نَوَى، وَإِلَّا لَغَا (۱۰)وَبِأَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ كَأُمِّي ظِهَارًا اَوْ طَلَاقًا فَكَمَا نَوَى (۱۱)وَبِأَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ كَظَهْرِ أُمِّي طَلَاقًا اَوْ إِيلَاءً فَظِهَارٌ

**ترجمه** :اودخاونددا ويناچې ستاسرا وستاشرمګاه اوستامخ اوستاغاړه ،اوستانصف اوستاثلث داسې دی لکه چې څوک انتِ ووايې ،اوکه يې په انت علی مثل امی سره دښه سلوک ياظهارياطلاق نيت وکړنو دنيت مطابق به وي که نه نو لغوه دی، اوکه يې په انت علی حرام کامی سره دظهارياطلاق نيت وکړنوهم به دنيت مطابق وي ،اوکه يې په انت علی حرام کظهرامی سره دطلاق ياظهارنيت وکړنوظهاربه وي .

**تشريح** :(۷)قوله وراسک وفرجک ای لوقال لامرأته راسک علی کظهرامی الخ ،يعنی که چاخپلې ښځې ته وويل راسک علی کظهرامی(يعنی ستاسرپرمازمادمورد شاپه څيردی )ياېې وويل فرجک علی کظهرامی (ستافرج پرمازمادمورپه شان دی) ياېې وويل (وجهک علی کظهرامی )ستامخ پرمازمادموردشاپه شان دی )ياېې وويل رقبتک علی کظهرامی (ستاغاړه پرما زمادموردشاپه شان ده )نوداټول صورتونه داسې دي لکه چې څوک خپلې ښځې ته ووايې انت علی کظهرامی (ته پرما داسې يې لکه زمادمورشا)لهذاپه مذکوره ټولو صورتونوکې داکس مظاهرګرځي ولی چې په دې ټولواعضاء کې په هرعضوسره له ټول بدن څخه تعبير کيږي لهذادښځې ددي اعضاؤله خپلې مورسره تشبيه ورکول دټولې ښځې دتشبيه ورکولوپه شان دی.

(۸)همداشان کې يې وويل نصفک علی کظهرامی (يعنی ستانصف پرمازمادموردشاپه شان دی ) ياېې وويل ثلثک علی کظهرامی(ستاثلث پرمازمادموردشاپه شان دي )نوداهم دانت علی کظهرامی په شان دي

لهذا اسې ويناکونکې هم مظاهرشمارل کيږي ولې چې دظهارحکم اول په جزء شائع کې ثابتيږي بيادټول بدن طرف ته سرايت کوي.

(۹)که چاخپلې ښځې ته وويل انت علی کامی یاانت علی مثل امی (يعنی ته پرمازمادمورپه شان يې) نودې کس دنيت پوښتنه به کيږي ترڅوددې حکم ظاهرشي نوکه ده وويل چې زماارادہ داوه چې ته په اعزاز اواکرام په مستحق والی کې زماپه نزدزمادمورپه شان يې نوداهمداسې ده يعنی په پردي کس هيڅ نه واجبيږي ولې چې په تشبيه سره دتعظيم عام رواج دی ،اوکه ده وويل چې مادظهارارادہ کړې وه نوداظهارکيږي ولې چې له ټولې مورسره په تشبيه ورکولوکې له يوه عضوسره تشبيه ورکول موجوددي مګرصريح نيت نشته لهذادنيت محتاج به وي.

(۱۰)اوکه يې وويل چې مادطلاق ارادہ کړې وه نوطلاق بائن واقع کيږي ولې چې په دې کلام کې د ښځې له مورسره په حرمت کې تشبيه ورکړې ده نوداداسې ده لکه چې خاوندخپلې ښځې ته وويل انت علی حرام (ته پرماحرامه يې) اودطلاق نيت يې کړی وي ،اوړاندې تيرشوچې انت طالق له الفاظ کنايه څخه دی اوپه کنايه لفظ سره طلاق بائن واقع کيږي ،اوکه دې کس په دې کلام سره هيڅ نيت نه ووکړی نوداکلام دشيخينوپه نزدلغوه دی ولې چې داکلام پرتعظيم حمل کيدای شي. دامام محمد رحمه الله په نزدداکلام دعدم نيت په صورت کې ظهاردی.

ف:دشيخينوقول راجح دی لمافی الدرالمختار:(وان نوی بانت علی مثل امی)............صحت نيته (والا) ينوشيئااوحذف الکاف (لغو)وتعين الادنی ای البريعنی الکرامة(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲/۶۲۶)

(۱۱)قوله انت علی حرام کامی ظهارای لونوی بقوله انت علی حرام کامی ظهاراالخ ،يعنی که چاخپلې ښځې ته وويل انت علی حرام کامی (ته پرماحرامه يې زمادمورپه شان) اوپه دې ويناسريې دظهارنيت وکړنوظهاربه وي ولې چې ده دخپلې ښځې په حرمت کې له مورسره تشبيه ورکړه که ده صرف دخپلې مورله شاسره تشبيه ورکړې وای نوظهاربه وای نوکله چې ده له کل مورسره تشبيه ورکړه نوپه طريقه اولی سره به ظهاروي .اوکه ده دطلاق نيت کړی وونوطلاق واقع کيږي ولې چې (انت علی حرام) له کناياتوڅخه دی اولفظ دکامی ددې حرمت دتاکيدلپاره دی لهذاپه نيت طلاق په دې قول سره طلاق واقع کيږي.

(۱۲)اوکه چاخپلې ښځې ته وويل انت علی حرام کظهرامی (ته پرمازمادموردشاپه شان حرامه يې)اوپه دې ويناسره يې دطلاق يايايلاء نيت وکړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدبه ظهاروي. دصاحبينوپه نزدچې ده کوم نيت کړی وي هغه به وي يعنی که يې دظهارنيت کړي وي ظهاربه وي اوکه يې دطلاق نيت کړي وي نوطلاق به وي اوکه يې دايلاء نيت کړي وي نوايلاء به وي اوکه يې هيڅ نيت نه وو کړی نوهم به ظهاروي ولې چې دتحريم لفظ ددې ټولواحتمال لري .دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې لفظ دظهرامی په ظهارکې صريح دی لهذادغيراحتمال نه لري بياظهارمحکم دی اوتحريم محتمل دی لهذامحتمل به دمحکم طرف ته رديږي.

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمختار:(وبانت علی)حرام (کظهرامی ثبت الظهارلاغير)لانه صريح قال ابن عابدين:(قوله لانه صريح)لان فيه التصريح بالظهرفکان مظاهراسواءنوی الطلاق اوالايلاءاولم تکن له نية(الدرالمختارمع الشامية:۲/۶۲۷)

(۱۲) وَلا ظِهَارَ إِلَّا مِنْ زَوْجَتِهِ (۱۳) فَلَوْ نَكَحَ امْرَأَةً بِغَيْرِ أَمْرِهَا فَظَاهَرَ مِنْهَا فَأَجَازَتْهُ بَطَلَ (۱۴) أَنْتُنَّ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي ظِهَارٌ مِنْهُنَّ (۱۵) وَكَفَّرَ لِكُلٍّ

**ترجمه**: او ظهار نه کیږي مګر له خپلې ښځې څخه، نو که چاله کومې ښځې سره نکاح وکړه ددي له امر څخه بغیر بیا یې ظهار وکړله دي ځخه بیا ښځې دنکاح اجازت ورکړنو ظهار باطلیږي، تاسې ټولې پرمازما دمور د شا په څیر یاست نو دا د ټولو ښځو په حق کې ظهار دی او دهریوه لپاره به جلا جلا کفاره ورکوي.

**تشریح**: (۱۲) یعنی ظهار له ښځې څخه ماسواله کومې بلې ښځې څخه نه کیږي حتی که چاله خپلې مینځې څخه ظهار وکړنو داکس به مظاهر نه وي ولی چې ایت کریمه ﴿وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ﴾ (یعنی کوم خلک چې له تاسې څخه ظهار کوي له خپلو ښځو څخه) کې له النساء څخه مراد زوجات دي او مملوکه مینځه زوجه نه ګڼل کیږي.

(۱۳) دا پر ما قبل تفریع ده یعنی که چاله کومې اجنبی ښځې سره ددي له اجازت څخه بغیر نکاح وکړه بیایې ددي له اجازې څخه وړاندي له دي څخه ظهار وکړ وروسته له ظهار کولو دي ښځې دنکاح اجازت ورکړنو له اجازت څخه وړاندي چې دي کس کوم ظهار کړی دی هغه باطل دی ولی چې دظهار تر وخت پوري ځرنګه چې دي ښځې اجازت نه وو ورکړی نو نکاح نه وه شوي دظهار پر وخت دا ښځه اجنبیه وه او له اجنبیه ښځې څخه ظهار نه کیږي کما مر.

(۱۴) قوله انتن علی کظهر امی ظهار منهن ای لو قال الزوج لزوجاته انتن علی کظهر امی ظهار منهن، یعنی که چا خپلو متعددو ښځو ته داسې وویل انتن علی کظهر امی (یعنی تاسې پر ما زما د مور د شا په شان یاست) نو دا کس له دي ټولو څخه ظهار کونکی دی ولی چې ده د ټولو طرف ته ظهار منسوب کړی دی لهذا له ټولو څخه به ظهار ثابتیږي لکه چې دا کس د خپلو ټولو ښځو طرف ته په طلاق منسوبولو سره ویلې وای انتن طوالق (تاسې طلاقې یاست) نو پر ټولو طلاق واقع کیدو.

(۱۵) قوله وکفر لکل ای وکفر المظاهر المذکور لکل واحدة منهن، یعنی پر مذکوره بالا مظاهر د هریوه لپاهر کفاره واجب ده ولی چې د ظهار په وجه سره د هري یوي ښځې په حق کې حرمت ثابتیږي او کفاره ددي لپاره وي ترڅو چې د ظهار په وجه سره ثابت شوی حرمت ختم کړي لهذا څومره حرمتونه چې وي هغومره به کفاري وي.

## فَصْلٌ فِي الْكَفَّارَةِ

### دا فصل د کفاره په بیان کې دی

مصنف رحمه الله له دي څخه وړاندي د ظهار حکم یعنی حرمت وطی و دواعی وطی بیان کړ او س په دي فصل کې هغه شئ بیانوي چې په هغه سره مذکوره حرمت ختمیږي یعنی د ظهار کفاره.

(۱۶) وَهُوَ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ (۱۷) وَلَمْ يُجْزِ الأَعْمَى وَمَقْطُوعُ الْيَدَيْنِ (۱۸) وَإِبْهَامَيْهِمَا أَوِ الرِّجْلَيْنِ (۱۹) وَالْمَجْنُونُ (۲۰) وَالْمُدَبَّرُ وَأُمُّ الْوَلَدِ وَالْمُكَاتَبُ الَّذِي أَدَّى شَيْئًا (۲۱) فَإِنْ لَمْ يُؤَدِّ شَيْئًا (۲۲) أَوِ اشْتَرَى قَرِيبَهُ نَاوِيًا بِالشِّرَاءِ الْكَفَّارَةَ (۲۳) أَوْ حَرَّرَ نِصْفَ عَبْدِهِ عَنْ كَفَّارَتِهِ ثُمَّ حَرَّرَ بَاقِيَهُ عَنْهَا صَحَّ

**ترجمه**: او کفاره د غلام ازدول دي، او په کفاره کې جائز نه دی ړوند او مقطوع الیدین، یا دواړه بټې ګوتې پرې شوی یا مقطوع الرجلین، او مجنون، او مدبر او ام ولد او داسې مکاتب کوم چې څه اداء کړي وي، او که

يې څه نه وي اداء کړې ،يايې واخيستې خپل قريب او په شراء سره يې دکفارې نيت وکړ،اويايې ازاد يې کړنيم غلام له خپلي کفارې څخه بيايې باقي نصف هم دکفارې له طرف څخه ازاد کړنوصحيح دي.

**تشريح** :(۱۶)دظهارکفاره داده چې مظاهردکفاره په نيت سره غلام ازادکړي لقوله تعالى﴿ وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِن نِّسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا ذَٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾(يعنى کوم خلک چې له خپلوښځوڅخه ظهارکوي بيادخپلې ويلې شوي خبري تلافي کول غواړي نوددوئ پرذمه يوغلام ياوينځه ازادول دي قبل تردې چې دواړه خاونداوښځه اختلاط سره وکړي په دې سره تاسې ته نصيحت کول کيږي الله تعالى ستاسې په ټولواعمالوخبردي)، بياخواه که غلام مسلمان وي اوکه کافروي ، مذکروي اوکه مؤنث وي ،بالغ وي اوکه نابالغ وي .دامام شافعي رحمه الله په نزددکافرغلام ازادول کافي نه دي ولې چې کفاره دالله تعالى حق دى نودادالله تعالى دشمن يعنى دکافرطرف ته صرف کول جائزنه ده لکه کافرته چې زکوة ورکول جائزنه ده .احناف ځواب ورکوي چې په قران مجيدکې مطلق رقبه ذکرده کومه چې کافراومسلمان دواړوته شامله ده لهذادکافرازادول هم کافي دى .

(۱۷)قاعده داده چې په غلام کې هرهغه عيب چې په هغه سره جنس منفعت فوت وي مانع جوازدی اوصرف په کوم عضوکې خلل راتلل مانع نه دى نوپه کفاره ظهارکې دړانده غلام ازادول جائزنه دى همداشان دمقطوع اليدين اومقطوع الرجلين غلام ازادول هم جائزنه دى ولې چې په دې عيبونوسره دده جنس منفعت فوت کيږي نوداحکماهلاک شوى دى .

(۱۸)قوله اوابهاميهمااى لم يجزتحرير مقطوع ابهامي اليدين ،يعنى که دکوم غلام دلاسونودواړه بټې ګوتې پرې شوي وي نوپه کفاره ظهارکې دهغه ازادول جائزنه دى ولې چې دبټوګوتوپه پرې کيدلوسره دنيولوقوت باقي نه پاتې کيږي دکوم په وجه سره چې جنس منفعت فوتيږي اودکوم چې جنس منفعت فوت وي دهغه ازادول جائزنه دى ،همداشان که دکوم غلام دواړه پښې پرې وي نودجنس منفعت دختميدلوپه وجه ددې ازادول هم جائزنه دي.

(۱۹)قوله والمجنون اى لم يجزتحرير المجنون الذي لايعقل ،يعنى دهغه مجنون غلام چې دهغه عقل بالکل نه وي ازادول په کفاره کې جائزنه دى ولې چې له اعضاؤڅخه فايده اخيستل بغيرله عقله ممکن نه دى لهذاداهم فائت المنفعت شوڅکه نودده ازادول هم جائزنه دى ،البته که کله ليونتوب اوکله افاقه ورباندې راتله نوپه حالت افاقه کې يې ازادول جائزدى ولې چې دافائت المنفعت نه بلکه مختل المنفعت دى او اختلال مانع نه دى.

(۲۰)قوله والمدبروام الولداى لايجزتحرير المدبروام الولد،يعنى په کفاره ظهارکې دمدبراوام الولد ازادول جائزنه دي ولې چې مدبردتدبيرپه وجه اوام الولدداستيلادپه وجه مستحق دحريت دي نوپه دوئ کې رقيت ناقص دى څکه نودوئ په کفاره کې ازادول جائزنه دي .همداشان دهغه مکاتب ازادول هم جائزنه دى کوم چې څه مال دبدل کتابت په ډول اداء کړى وي اوځان عاجزکړى نه وي ولې چې دبدل کتابت په اداء کولوسره دې ازاديږي اوبدل دقربت اوعبادت معنى باطلوي څکه نودى په کفاره کې ازادول جائزنه دى.

(۲۱)قوله فان لم يؤدشيئا..........صح اى لواعتق رجل لكفارته مكاتبالم يؤدشيئامن مال الكتابة جاز،يعني كه مظاهرداسې مكاتب ازادكړ كوم چې تراوسه پورې څه مال كتابت نه وي اداء كړى ولى چې مكاتب له كتابت څخه وړاندې رقيق دى اودكتابت په وجه دده رقيت نه زائليږي ولى چې شئ په خپل منافى سره زائليږي اوكتابت له رقيت سره منافى نه دى ځكه چې عقدكتابت دهغه بند دليرې كولو نوم دى كوم چې پرغلام درقيق والى په وجه سره ووا اودبندله ليرې كولو سره سره غلام بياهم رقيق پاتې كيږي لكه مولى چې خپل غلام ته دتجارت داجازت په وركولو سره بند ختم كړي نودده رقيت نه ختميږي .

(۲۲)كه مظاهردظهاردكفارې په نيت سره خپل قريب مثلاً پلار يازوى واخيستى نوكفاره اداءكيږي ولى چې دعتق علت شراء ده ﴿لقوله ﷺ لَنْ يَجْزِيَ وَلَدٌ وَالِدَهُ اِلَّا اَنْ يَجِدَهُ مَمْلُوكًا فَيَشْتَرِيَهُ فَيُعْتِقَهُ﴾ (زوى دپلار داحسان بدله نه شي وركولى مگرداچې څوک خپل پلار مملوک ومومندې زوى هغه واخلي اوبيايې ازادكړي )حديث شريف كې فاء دتعقيب لپاره ده لهذا دعتق سبب شراء ده .

(۲۳)كه مظاهرخپل نصف غلام په كفاره كې ازادكړبيايې باقى غلام هم په كفاره كې ازادكړ نوداجائزدى ولى چې مظاهرپه دوه ځله كلام كولوسره كامل غلام ازادكړى دى نوكوم نقصان چې په نصف اخركې واقع شوى دى هغه دده په ملک په پاتې كيدلوسره په كفاره كې دازادولوپه وجه پيداشوى دى په دې دول نقصان له اداء كفارې څخه مانع نه دى .

(۲۳)وَاِنْ حَرَّرَ نِصْفَ عَبْدٍ مُشْتَرَكٍ وَضَمِنَ بَاقِيَهُ (۲۵)اَوْ حَرَّرَ نِصْفَ عَبْدِهِ ثُمَّ وَطِئَ الَّتِي ظَاهَرَ مِنْهَا ثُمَّ حَرَّرَ بَاقِيَهُ لَا

**ترجمه** :اوكه يې دمشترک غلام نصف ازادكړاودباقى ضامن شويايې خپل نصف غلام ازادكړبيايې له مظاهرمنهاسره وطى وكړه بيايې باقى حصه ازاده كړه نوصحيح نه دى .

**تشريح** :(۲۴)كه مظاهردمشترک غلام نصف حصه دكفارې په نيت ازاده كړه په دې حال كې چې ازادكونكى غنى ووا اودباقى مانده نصف دقيمت خپل شريک ته ضامن شونوداامام ابوحنيفه ﷫ په نزدپه دې سره كفاره ظهارنه اداء كيږي اودصاحبينوپه نزدكه معتق غنى وونواداء كيږي اوكه تنگ لاسى وو نونه اداء كيږي .

دصاحبينودليل دادى چې دنصف غلام خودى مالک وو اودضمان په وركولوسره دخپل شريک دحصې هم مالک شونودى دپوره غلام ازادكونكى شوپه داسې حال كې چې هغه غلام دده په ملک دى .البته كه معتِق غنى وي نودى دخپل شريک دحصه ضامن گرځي نوداعتق بلاعوض شويعني پرغلام دازادې هيڅ عوض نه راغى لهذاداله كفارې څخه كفايت كوي اوكه مسكين وو نوغلام به سعى كوي نودادعتق بعوض كيدلوپه وجه له كفارې څخه كفايت نه كوي ولى چې كفارې لره تحريررقبه بلاعوض كفايت كوي.

داامام ابوحنيفه ﷫ دليل دادى چې كله مظاهرخپله حصه ازاده كړه نودشريک حصه دهغه په ملک كې ناقص پاتې شوه (ولى چې اوس ده لره غلام ساتل محال دى دى به ازاديږي )اوس چې كله دضمان په ذريعه سر دمظاهرملک ته راځي نوناقصه راځي اودناقص ازادې دكفاره ظهارلپاره كافى نه ده .

ف :دامام ابو حنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمختار: ولایجزی ..........اعتاق نصف عبدمشترک ثم باقیه بعدضمانه لتمکن النقصان (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۲/۶۳۰)

(۲۵)که مظاهرنیم غلام په کفاره کې ازادکړبیاییې له مظاهرمنهاسره وطی وکړه بیاییې باقی مانده غلام ازادکړنودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدذااعتاق کافی نه دی اودصاحبینوپه نزدکافی دی ،دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادی چې په اعتاق کې تجزی کیدای شې (یعنی که یې غلام لږلږازادکړنوڅومره چې یې ازادکړی دی هغومره ازادیږي )اوداعتاق شرط دادی چې له جماع څخه به وړاندي وي لقوله تعالی ﴿فتحریررقبة من قبل ان یتماسا﴾ (یعنی کوم خلګ چې له خپلوښځو څخه ظهارکوي ...نوددوئ پرذمه دیوه غلام یامینځې ازادول دي وړاندي تردي چې دواړه خاونداوښځه سره یوځای شې)،دلته دنصف ازادول له جماع څخه وروسته متحقق شولهذاداجائزنه دی .دصاحبینوپه نزدځرنګه چې اعتاق متجزی نه دی په دي وجه دنصف غلام ازادول دپوره غلام ازادول دي لهذادصاحبینوپه نزددپوره غلام ازدول له جماع څخه وړاندي متحقق شوځکه جائزدی .

ف : دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمختار: ولایجزی ..........نصف عبده عن تکفیره ثم باقیه بعدوطء من ظاهرمنهاللامربه قبل التماس ،قال ابن عابدین :فالشرط للحل مطلقااعتاق کل رقبة قبل التماس ولم یوجدفتقررالاثم بذالک الوطء(الدرالمختارمع الشامیة: ۲/۶۳۰)

(۲۶)فَإِن لَم يَجِد مَا يُعتِقُ صَامَ شَهرَينِ مُتَتَابِعَينِ (۲۷) لَيسَ فِيهِمَا رَمَضَانُ وَأَيَّامٌ مَنهِيَّةٌ (۲۸) وَإِن وَطِئَ فِيهِمَا لَيلًا أَو يَومًا نَاسِيًا (۲۹) أَو أَفطَرَ استَأنَفَ الصَّومَ (۳۰) وَلَم يَجزِ لِلعَبدِ إِلَّا الصَّومُ وَإِن أَطعَمَ أَو أَعتَقَ عَنهُ سَيِّدُهُ فَإِن لَم يَستَطِعِ الصَّومَ أَطعَمَ سِتِّينَ فَقِيرًا كَالفِطرَةِ أَو قِيمَتِهِ

**ترجمه** :اوکه یې داسې غلام ونه موندچې دی یې ازادکړي نودوه میاشتې دي پرلپسې روژي ونیسې چې په هغوکې به رمضان اوایام منهیه نه وي ،اوکه یې له مظاهرمنهاسره وطی وکړه په دي دوومیاشتوکې په شپه کې یاپه ورځ کې په هیره سره یایې روژه ماته کړه نوله سره به بیرته روژي نیسي ،اوغلام لره جائزنه ده مګرروژه نیول که څه هم اطعام وکړي یاازادکړي دده له طرف څخه دده مولی ،نوکه یې دروژو استطاعت نه وو نوشپیتو مسکینانوته دفطري په شان خورک ورکړي یادي دهغه قیمت ورکړي .

**تشریح** :(۲۶)که مظاهردظهارکفاره اداء کول غوښتل مګردغلام په ازدي قادرنه وو نومتصلې به شپیته روژي نیسي اوکه یې ددي قدت هم نه وو نوشپیتو مسکینانوته دي خورک ورکړي ولی نص قرآن ﴿فتحریررقبة من قبل أن یتماسا ذلکم توعظون به والله بما تعملون خبیر فمن لم یجد فصیام شهرین متتابعین من قبل أن یتماسا فمن لم یستطع فإطعام ستین مسکینا ذلک لتؤمنوا بالله ورسوله﴾ (یعنی کوم خلک چې له خپلوښځو څخه ظهارکوي بیادخبلې شوي ویناتلافی کول غواړي نوددوئ پرذمه دیوغلام یامینځې ازادول دي قبل تردي چې دواړه خاونداوښځه سره یوځای شې په دي سره تاسې ته نصیحت کیږي الله تعالی ستاسې په اعمالوپوره خبردی بیاچاته چې غلام یامینځه میسرنه وي نودهغه پرذمه متصلې شپیته روژي دي قبل تردي چې دواړه سره یوځای شې بیادچاچې داهم په وس نه وی پوره نودهغه پرذمه شپیتو مسکینانوته طعام ورکول دي داحکم ددي لپاره بیان کړل شوی دی چې پرالله اودهغه پررسول ایمان راوړئ )په همدي ترتیب سره واردشوی دی .

(۲۷)او دمظاهر دكفاري متصلو روژونيولو لپاره دا شرط دى چې ددي دوومياشتوپه دوران كې به درمضان مياشت نه وي ولى چې درمضان روژي له ظهار څخه نه واقع كيږي ولى چې دا روژي له ظهار څخه په واقع كولو كې دايجاب باري تعالى ابطال لازميږي ،همداشان به ددي دوومياشتوپه دوران كې ايام منهيه هم نه وي يعنى دكوچنى اختر ورځ اودلوى اختر ورځ اودري ورځې دايام تشريق هم نه وي ولى چې په دي ورځو كې روژه نيول منهى عنه ده نوپه دي سره واجب كامل نه شي اداء كيدلى .

ف:اودادوه مياشتې روژي كه يې دسپوږمۍ په حساب سره نيولې نوپه هرصورت جائزدي كه څه هم دواړه مياشتې دنه ويشتو ورځو وي .اوكه يې دمياشتې له منځ څخه شروع كړي نوشپيته روژي پوره كول ضروري دي كه له نه پنځوس ورځو روژونيولو څخه وروسته افطاروكړنوبيرته له سره روژي نيول ضروري دي .

(۲۸)كه مظاهرله مظاهرمنهاسره په دي دوومياشتوكې وطى وكړه خواه كه يې په شپه كې عمداوكړي ياپه په ورځ كې سهواوكړي نودطرفينوپه نزدبه داكس بيرته له سره روژي نيسي .دامام ابويوسف رحمه الله په نزدله سره روژي نيولوضرورت نشته .دامام ابويوسف رحمه الله دليل دادى چې په شپه كې عمدااوپه ورځ كې سهوا وطى كول مفسدصوم نه ده لهذاداوطى دروژوله اتصال څخه مانع نه دى اوپه كفاره كې تتابع شرط ده هغه متحقق شولهذااعاده ضروري نه ده. دطرفينورحمهماالله تعالى دليل دادى چې په روژوكې دوشرطه دي يوداچې له وطى څخه به وړاندي وي دوهم داچې له طى څخه به خالي وي اوپه خلال شهرين كې دوطى كولوپه وجه سره دوهم شرط متحقق نه شوځكه اعاده ضروري ده .

ف:دطرفينوقول راجح دى لمافى الدرالمختار:اى الخلاف بين ابى يوسف والطرفين فعندجماع المظاهرمنهاانمايقطع التابع ان افسدالصوم وعندهمامطلقا الى ان قال ولذاقال فى الحواشى اليعقوبية ان عدم الفرق بين السهووالعمدهوالظاهرلانه مقتضى دليل ابى حنيفة ومحمد(ردالمحتار:۲/۶۳۲)

(۲۹)همداشان كه مظاهرددوومياشتوپه منځ كې يوه ورځ افطاروكړخواه كه دعذرپه وجه وي اوكه بغيرعذروي په هرصورت كې به داكس بيرته له سره روژي نيسي ولى چې په روژوكې تتابع شرط ده كومه چې فوت شوحال داچې داكس به تتابع قادرهم دى .

(۳۰)كه كوم غلام له خپلې ښځې څخه ظهاروكړنودهغه كفاره صرف په روژوسره اداء كيږي ولى چې غلام لره په هيڅ شئ ملكيت حاصل نه دى لهذادي نه دغلام په ازادولوسره كفاره اداء كولى شي اونه په اطعام سره كفاره اداء كولى شي لهذاده لره روژه نيول متعين دى .اوكه دده له طرف څخه دده مولى غلام ازادكړياېې اطعام وكړنوهم كافى نه دى ځكه چې غلام دمالك والى اهل نه دى اودمولى په مالك كولوسره مالك نه ګرځي لهذاغلام دتكفيربالمال اهل هم نه دى .

(۳۱)كه مظاهردمرض په وجه يادكبرسنى په وجه سره په روژونيولوقدرت نه درلودنوپه كفاره كې دي شپيتومسكينانوته دومره خوراک وركړي څومره چې په صدقه فطركې وركړل كيږي يعنى نصف صاع غنم يايوه صاع خرمادي وركړي ،دكوم صورت چې به داوي چې دفطري په شان دي هرمسكين نيمه صاع غنم يايوه صاع خرمايايوه صاع اوربشې اويادهغه قيمت وركړي ولى چې مقصوددمسكين حاجت دفع كول دي اودامقصودپه قيمت اداء كولوسره حاصليږي .

(٣٢) فَلَوْ أَمَرَ غَيْرَهُ أَنْ يُطْعِمَ عَنهُ عَن ظِهَارِهِ فَفَعَلَ أَجْزَأَهُ (٣٣) وَتَصِحُّ الإِبَاحَةُ فِي الكَفَّارَاتِ وَالفِدْيَةِ دُونَ الصَّدَقَاتِ وَالعُشْرِ (٣٤) وَالشَّرْطُ غَدَاءَانِ أَوْ عَشَاءَانِ مُشْبِعَانِ أَوْ غَدَاءٌ وَعَشَاءٌ (٣٥) وَإِنْ أَعْطَى فَقِيرًا شَهْرَيْنِ صَحَّ (٣٦) وَلَوْ فِي يَوْمٍ لَا إِلَّا عَن يَوْمِهِ (٣٧) وَلَا يَسْتَأْنِفُ بِوَطْئِهَا فِي خِلَالِ الإِطْعَامِ

**ترجمه**: اوكه يې بل چاته امروكړچې زماله طرف څخه دظهار خوړك وركړه نوهغه وركړنو كافي دى، او اباحت صحيح دى په كفاراتو اوفديه كې نه په صدقاتو اوعشركې، اوشرط دادى چې دوه سهاره يادوه ماښامه فقيرته په ډك نس خوړك وركړي يايوسهاريوماښام، اوكه يې يوه فقيرته دوه مياشتې خوړك وركړنو هم صحيح دى، اوكه يې په يوه ورځ كې خوړك وركړنوصحيح نه دى مګرله هغې ورځې، اواعاده دې نه كوي له مظاهرمنها سره دخوړك په منځ كې په وطى كولو سره.

**تشريح**: (٣٢) كه چاكوم بل كس ته امروكړچې زماله طرف څخه زمادظهاردكفاري اطعام وكړه هغه اطعام وكړنوداهم كفايت كوي ځكه چې دظهاركونكى له خپل طرف څخه دخوړك وركولودحكم كول معنى له ده څخه دقرض غوښتل دي او فقيرچې كله پردي خوړك قبضه كوي نواولادظهاركونكى له طرف څخه په نائب جوړيدلوسره دمظاهرلپاره پردي خوړك قبضه كوي بيادخپل ځان لپاره قبضه كوي نودمظاهراول په خپله مالك كيدل اوبيافقيرلره مالك جوړول متحقق شو.

(٣٣) اوپه ټولوكفاراتوكې اباحت صحيح دى خواه كه دظهاركفاره وي يادروژې وغيره كفاره وي، داباحت مطلب دادى چې مثلاً دشپيتومسكينانوپه وړاندې دخوړك په ايښودلوسره دخوړك اجازت وركړي نوهغوئ چې څومره وخوړل هغه كفايت كوي فقيرانولره مالك جوړول ضروري نه دى. همداحكم دحج دجناياتو اودشيخ فاني دروژودفديې هم دى ولې چې په نص كې اطعام ذكردى اوداطعام معنى په خوړك قدرت وركول ده اوهمداخبره په اباحت كې متحققه ده، البته په زكوة اوعشركې اباحت كافي نه دى بلكه دفقيرمالك جوړول ضروري دى ولې چې ددوئ په باره كې په نصوصوكې لفظ دايتاء راغلى دى كوم چې دتمليك مقتضي دى لهذاصرف اباحت كافي نه دى.

**ف**: په اباحت اوتمليك كې فرق دادى چې په اباحت كې فقيرلره په مباح شوى شئ كې دهبې اوخرڅولو وغيره تصرفاتو اختيارنه وي حال داچې دتمليك په صورت كې فقيرلره په مملوك شئ كې دمذكوره ټولوتصرفاتواختيار وي.

(٣٤) اوپه اباحت طعام كې شرط دادى چې فقيرلره دوه سهاره يادوه ماښامه يايوسهاراويو ماښام په ډك نس خوړك وركړل شي ولې چې معتبرديوې ورځې حاجت دفع كول دي اوعام عادت دادى چې په ورځ كې دوه وخته دخوړك حاجت وي بيادوه سهاره يادوه ماښامه خوړك وركول داسې دى لكه ديوه فقيرپه يوه ورځ كې دوه ځله دطعام حاجت پوره كول.

(٣٥) كه يې يوه مسكين ته ترشپيتوورځوپورې خوړك وركړنوهم كفاره اداء كيږي ولې چې له كفاري څخه مقصود دمحتاج حاجت دفع كول دي اوحاجت هرورځ نوى نوى پيداكيږي نوپه دوهمه ورځ همدې مسكين ته خوړك وركول داسې دى لكه چې بل مسكين ته يې وركړى وي لهذاترشپيتوورځو پورې يوه مسكين ته خوړك وركول شپيتومسكينانوته دخوړك وركولوپه شان شو.

(۳۶)قوله ولو فی یوم لا الاعن یومه ای لو اعطی مسکینا واحدا کل الطعام فی یوم واحد لایصح الاعن یومه ،یعني که یې یوه مسکین ته په یوه ورځ کې ټول خورک ورکړنو دشپیتو ورځولپاره کفایت نه کوي بلکه صرف دیوي ورځې لپاره کافی ده ولی چې متفرق کول په نص قرآن سره ثابت ده کوم چې په مذکوره صورت کې متحقق نه شونو دادسې شولکه چې کوم حاجې جمره په یوځل په اوو ډبروسره وویلې.

(۳۷)که مظاهردکفاري دخورک ورکولوپه منځ کې له مظاهرمنهاسره وطی وکړه نودخورک له سره راګرځولوضرورت نشته ولی چې ایت کریمه ﴿فمن لم یستطع فاطعام ستین مسکینا ذالک لتؤمنوا بالله ورسوله﴾ (دچاچې داهم په وس نه وی پوره نودهغه پرذمه شپیتو مسکینانوته طعام ورکول دي داحکم ددي لپاره بیان کړل شوی دی چې پرالله اودهغه پررسول ایمان راوړئ)کې دانه ده بیان شوی چې خورک به له وطی څخه وړاندي وي.

(۳۸)ولو أطعَمَ عن ظِهارَينِ سِتِّينَ فقيرًا كُلَّ فقيرٍ صاعًا صَحَّ عن واحدٍ،(۳۹)وَعَنْ إفطارٍ وَظِهارٍ صَحَّ عنهما(۳۰)وَلَوْ حَرَّرَ عَبْدَيْنِ عن ظِهارَيْنِ،ولم يُعَيِّنْ صَحَّ عنهما،وَمِثْلُهُ الصِّيامُ وَالإطْعامُ(۳۱)وَإنْ حَرَّرَ عنهما رَقَبَةً أو صامَ شَهْرَيْنِ صَحَّ عن واحدٍ(۳۲)وَعَنْ ظِهارٍ،وَقَتْلٍ لا

**ترجمه**:اوکه یې اطعام وکړددوو ظهارولهطرف څخه شپیته فقیرانوته هریوه فقیرته یوه صاع نوصحیح کیږي دیوه ظهارله طرفه،اوکه یې دکفاره ظهاراوکفاره افطارلهطرفه څخه،یایې دوه غلامه ازادکړل ددوظهارولهطرفه اومتعین یې نه کړل نوصحیح کیږي ددواړوله طرف څخه همداحکم دروژه نیولو اوخورک ورکولودی،اوکه یې ازادکړددواړوله طرفه یوغلام یایې دوه میاشتې روژه ونیوله نوصحیح کیږي دیوه له طرفه،اوکه دکفاره ظهاراوکفاره قتل له طرف څخه وونونه صحیح کیږي.

**تشریح**:(۳۸)که پرچادظهاردوه کفاري واجبي شوي ده ددواړوله طرف څخه شپیتومسکینانوته شپیته صاع طعام ورکړهریوه فقیرته یوه صاع ورکړه نودشیخینوپه نزددیوي کفاري له طرف څخه صحیح کیږي ددواړولپاره کافی نه ده،اودامام محمد رحمه الله په نزدد واړه کفاري اداء کیږي ولی دغنوچې کوم مقداراداء کړل شوی دی هغه ددواړلپاره کافی دی اوکوموفقیرانوته چې ورکړل شوی دی هغه دفقیروالی په وجه سره دکفارومحل هم دی ولی چې فقیردیوي کفاري دنصف صاع په اخیستلوسره دکفاري له مصرف څخه نه خارجیږي.

دشیخینودلیل دادی چې واجب خوددوکفاروپه وجه سره یوسل اوشلوفقیرانوته خورک ورکول وو ده دیوسل اوشلوپرځای شپیتوفقیرانوته یوجنس دوچنده ورکړاوپه یوه جنس کې ددووکفارونیت کول لغوه دی ولی چې نیت داجناسومختلفه وپه منځ کې دامتیازکولولپاره وي اوپه جنس واحدکې دامعنی متحقق نه ده لهذادمطلق ظهارنیت باقی پاتې شواوده چې څه اداء کړي دي هغه دیوه ظهارکفاره جوړیدلی شي ولی خومره مقدارچې مقرریږي هغه له هغه څخه کم لره مانع وي زیادت لره مانع نه وي نودکفاري لپاره ترنصف صاع کم جائزنه ده نه داچې له نصف صاع څخه زیادت هم جائزنه دی لهذاپه دي سره یوه کفاره اداء کیږي.

**ف**:دامام محمد رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمختار:اطعم ستین مسکینا کلا صاعا عابدلعة واحدة عن ظهارین کمامر صح عن واحد.........الی ان قال خلافا لمحمد ورجحه الکمال ،قال ابن عابدین:(قوله ورجحه الکمال)وکذاالاتقانی فی غایة البیان (الدرالمختارمع الشامیة:۱۳۳)

(۳۹)قوله وعن افطار وظهار ای لو اطعم ستین فقیرا کل فقیر صاعا عن کفارة افطار وکفارة ظهار صح عنهما یعنی که دچا پرذمه دوه کفاري لازمي وي یوه دظهار اوبله درمضان دروژي دماتولو،اوده ددي دواړوپه نیت کولوسره په شپیتو مسکینانو کې هریوه ته یوه یوه صاع غنم ورکړل نو دادواړو کفارو له طرف څخه کفایت کوي ولی چې اداء شوی مقدار ددواړو لپاره کافی دی اوداختلاف جنس په وجه سره نیت هم معتبردی.

(۴۰)که پرچا دظهار دوه کفاري واجبې شوي ده ددواړو له طرف څخه دوه غلامه ازادکړل اوپه دواړو کې یې کوم یوله دوو کفارو څخه دکومې یوي لپاره متعین نه کړنو دا صحیح دی ،همداشان که یې بلاتعین څلورمیاشتې روژه ونیوله یایې یوسل اوشلو مسکینانو ته خورک ورکړنو صحیح دی ولی چې جنس متحد دی دمعین کونکی نیت ضرورت نشته ،دامام شافعی اوامام مالک په نزد بلاتعین صحیح نه دي.

(۴۱)که پرچا دوه کفاري واجب وي ده ددواړو له طرف څخه یوغلام ازادکړیایې دوه میاشتې متصلې روژي ونیولې نو دادیوې کفاري له طرف څخ کفایت کوي لهذادي کس لره اختیاردی چې له دووکفارو څخه یې کومه چې خوښه وي معینه کړي ولی چې په جنس واحدکې دتعیین نیت غیرمفیددی لهذالغوه دی اوکله چې نیت لغوه شونوداسې شولکه چې ده دظهارله دووکفارو څخه یوغلام ازادکړی وي اوددواړو له طرف څخه یې نیت نه وي کړی نوداجائزده اوده لره اختیاردی چې له دواړو څخه چې کومه یوه وغواړي متعینه کړي نوهمداشان دلته هم جائزده.

ف:دامام زفر رحمه الله په نزدله دواړو کفارو څخه دیوي له طرفه هم نه اداء کیږي ولی چې ده دهري کفاري له طرف څخه نصف غلام ازادکړی دی اوپه کفاره کې نصف غلام ازادول صحیح نه دی په دي وجه داازادول دده له طرف څخه تبرع ده لهذا اوس دکومې یوي له طرف څخه متعین کول دده په اختیارکې نه دي.

(۴۲)قوله وعن ظهار وقتل لا ای لو حرر رقبة مؤمنة عن ظهار وقتل لم یجز عن واحد منهما ،یعنی که دچا پرذمه دوه کفاري وي یوه دظهار اوبله دقتل ،اوده له دي دواړو څخه دیوي له متعین کولو بغیر یوغلام ازادکړنوپه دي صورت کې له دواړو کفارو څخه یوه هم نه اداء کیږي ولی چې دواړه کفاري له یوه جنس څخه نه دي لهذاله کفاري ورکولو څخه وړاندي تعین ضروري دي ،هوکه غلام کافروي نوهغه دظهار دکفاري له طرف څخه کفایت کوي ولی چې په کفاره قتل کې دکافرغلام ازدول جائزنه دی لهذا دظهار دکفاري لپاره متعین دي.

## بَابُ اللِّعَانِ

### داباب دلعان په بیان کې دی

لعان دلاعن مصدردی په لغة کې دشړلو اوله خیرڅخه دلیري کولوپه معنی دی ،اوشرعاًداسې څلورو شهادتونو ته ویل کیږي کوم چې په قسمونو سره موکدوي بیادنارینه شهادتونه مقرون باللعن وي او دښځې شهادتونه مقرون بالغضب وي ،اودنارینه شهادتونه دنارینه په حق کې دحدقذف قائم مقام دي اودښځې شهادتونه دښځې په حق کې دحدزناقائم مقام دي یعنی له لعان څخه وروسته پرنارینه حدقذف نشته اوپرښځې حدزنانشته.

دباب اللعان له باب الظهار سره مناسبت دادی چې ظهار او لعان دواړه موجب حرمت دي ، بیا ظهار په دي وجه مقدم کړای شو چې ظهار دلعان په نسبت اقرب الی الاباحت دی ولی چې لعان که دغیر منکوحه طرف ته منسوب کړل شي نو موجب حد قذف دی او موجب حد محض معصیت وي.

دلعان لپاره شرط قیام زوجیت دی ، اوسبب یې دنارینه پرښځې داسې الزام لګول دي کوم چې په اجنبیه کې موجب حد وي. اودلعان رکن داسې شهادتونه دي کوم چې مؤکد باللعن وي ، اودلعان حکم بعدتلاعن حرمت وطی والاستمتاع ده .

(۱) هِيَ شَهَادَاتٌ مُؤَكَّدَاتٌ بِالْأَيْمَانِ مَقْرُونَةٌ بِاللَّعْنِ قَائِمَةٌ مَقَامَ حَدِّ الْقَذْفِ فِي حَقِّهِ، وَمَقَامَ حَدِّ الزِّنَا فِي حَقِّهَا (۲) وَلَوْ قَذَفَ زَوْجَتَهُ بِالزِّنَا، وَصَلَحَا شَاهِدَيْنِ وَهِيَ مِمَّنْ يُحَدُّ قَاذِفُهَا أَوْ نَفَى نَسَبَ الْوَلَدِ، وَطَالَبَتْهُ بِمُوجَبِ الْقَذْفِ وَجَبَ اللِّعَانُ (۳) فَإِنْ أَبَى حُبِسَ حَتَّى يُلَاعِنَ أَوْ يُكَذِّبَ نَفْسَهُ فَيُحَدَّ (۴) فَإِنْ لَاعَنَ وَجَبَ عَلَيْهَا اللِّعَانُ فَإِنْ أَبَتْ حُبِسَتْ حَتَّى تُلَاعِنَ أَوْ تُصَدِّقَهُ (۵) فَإِنْ لَمْ يَصْلُحْ شَاهِدًا حُدَّ (۶) وَإِنْ صَلَحَ وَهِيَ مِمَّنْ لَا يُحَدُّ قَاذِفُهَا فَلَا حَدَّ، وَلَا لِعَانَ

**ترجمه** :لعان څو داسې ښهادتونه ویل کیږي چې هغوئ په قسمونو سره مؤکد وي کوم چې له لعنت سره مقرون وي کوم چې دحد قذف قائم مقام وي دنارینه په حق کې او دزنا قائم مقام وی دښځې په حق کې ،نو که یې تهمت ولګاوو پرخپله ښځه دزنا او نرا وښځې دګواهي صلاحیت درلود او ښځه له هغو څخه وه چې دهغې پرتهمت لګونکی حد جاري کیدو یایې نفی کړ دبچی نسب او ښځه له ده څخه دتهمت دسزا مطالبه وکړي نولعان واجبیږي ،نو که خاوند انکار وکړ نو قید کیږي به تر څو چې لعان وکړي یا دخپل ځان تکذیب وکړي اوپرده حد جاری شي ،نو که نارینه لعان وکړ نو پرښځه هم لعان واجبیږي نو که دې انکار وکړ نو قید کیږي به ترڅو چې لعان وکړي یا دخاوند تصدیق وکړي ، او که خاوند دګواه جوړیدلو قابل نه وو نو ده ته به حد ورکول کیږي ، او که خاوند قابل وو مګر ښځه له هغو څخه وه چې پرهغې پر تهمت لګونکې باندې حد نه جاري کیدو نو پرخاوند نه حد شته او نه لعان .

**تشریح** :(۱)مصنف رحمه الله دلعان شرعی تعریف بیان کړی دی چې لعان شرعًا داسې څلور شهادتونه ویل کیږي کوم چې په قسمو سره مؤکد وي بیا د نارینه شهادتونه مقرون باللعن وي یعنی نارینه به څلور ځله شاهدي ورکوي او هر ځل به وایې چې زه الله ﷻ ګواه جوړوم چې ما کوم دزنا تهمت پر دې ښځې لګولی دی په هغه کې زه رښتیا ویونکی یم او پنځم ځل به وایې ما چې کوم تهمت پردې ښځه لګولی دی که زه په دې کې دروغ ویونکی یم نو پرمادې دخدای ﷻ لعنت وي. اودښځې شهادتونه به مقرون بالغضب وي یعنی دنارینه په شیر به ښځه څلور ځله شاهدي ورکوي او هر ځل به وایې چې زه پر الله ﷻ له قسم سره ګواهي ورکوم چې دې کس چې پرما دزنا تهمت لګولی دی په دې کې دی دروغجن دی او پنځم ځل به وایې ده چې کوم تهمت دزنا پرما لګولی دی که دا کس په دې کې رشتیا ویونکی یې نو پرما دې دالله ﷻ غضب وي .

اودنارینه شهادتونه دنارینه په حق کې دکاذب والی په صورت کې دحد قذف قائم مقام دي ولی چې پردرواغو خبرو باندې الله ﷻ شاهد جوړول له حد څخه زیات مهلک دی اودښځې شهادتونه دحد زنا قائم مقام دي یعنی وروسته له لعانه به پرنارینه حد قذف نه جاري کیږي اوپرښځه به حد زنا نه جاري کیږي.

(۲)که خاوند پر خپله ښځه دزنا تهمت ولګاو و مثلاوي ويل ته زانيه يې ياماته په زنا کولو وليدلې يايې وويل ای زانيه ياخاوند دخپلې ښځې دبچی نسب نفی کړ مثلاوي ويل دابچی له زنا څخه دی يادابچی له ما څخه نه دی ،او ښځې له خپل خاوند څخه دموجب قذف (يعنی لعان) مطالبه وکړه نو پر خاوند لعان واجب دی په دي شرط چې زوجين به دواړه پر کوم مسلمان دګواهی ورکولو اهل وي يعنی کافر يامملوک يانابالغ يامحدودفی القذف به نه وي او ښځه به داسې وي چې پر هغې تهمت لګونکی ته به حدقذف ورکول کيږي يعنی داسې ښځه به نه وي له کومې سره چې په نکاح فاسده کې وطی شوي وي يايې په ژوند کې کله زنا کړي وي يادي لره بچی غير معروف الاب وي ولی چې پر داسې ښځې تهمت لګونکی ته حدنه ورکول کيږي.

(۳)که خاوندله لعان څخه انکار وکړنو حاکم به دی بندی کړي ترڅو چې دی په لعان کولو سره ځان بری کړي ياخپل ځان دروغجن کړي په دي دوهم صورت کې پرده حدقذف جاري کيږي ولی چې لعان دحدقائم مقام دی نو کله چې لعان ونه شونو پرده به اصل جاري کول واجب وي.

(۴)که خاوند لعان وکړنو پر ښځه هم لعان کول واجب دي ليکن څرنګه چېخاوندمدعی دی لهذا دلعان ابتداء به له خاوند څخه کيږي،او که ښځه له لعان کولو څخه انکار وکړي نو حاکم به دابندی کړي ترڅو چې لعان وکړي يادخپل خاوند تصديق وکړی چې هغه رشتياوايې ولی چې لعان پر ښځه هم واجب دی او هغه دلعان پر اداء کولو قادر دی لهذا ددي حق په وجه به دامحبوسه کيږي.

(۵)که خاونددي قابل نه وي چې دده دګواهی اعتبار دي وکړای شې مثلا غلام وي ياکافر وي (ددي صورت دادی چې زوجين دواړه کافروي بيا ښځه مسلمانه شې او پر خاوندله اسلام وړاندي کولو وړاندي هغه پر خپله ښځه تهمت ولګوي) يامحدودفی القذف (محدودفی القذف هغه دی چې پرده پرچادتهمت زنالګولو په جه سره حدقذف جاري شوي وي)وي په دي دري واړه صورتونو کې که خاوند پر خپله ښځه دزنا تهمت ولګوی نو پرده لعان واجب نه دی بلکه خاوند ته به حدقذف ورکول کيږي ولی چې لعان په يوه داسې وجه سره متعذر شوی دی کومه وجه چې دخاوند له طرف څخه ده لهذا اوس په دواجب اصلی يعنی حدقذف طرف ته رجوع کيږي او حدقذف دباری تعالی په دي ارشاد سره ثابت دی (والذين يرمون المحصنت لم لم يأتوا باربعة شهداء فاجلدوهم ثمانين جلدة و لاتقبلوا لهم شهادة ابدا)(يعنی کوم خلک چې تهمت ولګوي پر پاک لمنو ښځو او بيا پر خپله دعوی څلور ګواهان پيښ نه کړای شي نو داسې خلکو ته اتيادوري ورکړئ اوددوئ کومه ګواهی کله هم مه قبلوئ).

(۶)که خاونداهل شهادت وي مګر دده ښځه داسې وي چې پر هغې تهمت لګونکی ته حدنه ورکول کيږي مثلا ښځه دچامينځه وي ياکافره وي يامحدودفی القذف وي ياکوچنی وي يامجنونه وي يادادي زنامعروفه وي نو په دي ټولو صورتونو کې به نه ددي پر خاوند حدواجبيږي او نه لعان ولی چې دا ښځه نه اهل شهادت ده او نه ددي په جانب کې احصان (احصان دادی چې کوم بالغ اوازاد مسلمان په نکاح صحيح سره وطی وکړي )شته نو داهل شهادت دنه کيدلو په وجه سره لعان واجب نه دی او دمحصنه نه کيدلو په وجه سره پر خاوند حدقذف هم نه جاري کيږي.

(۷) وصفته مانطق به النص فإن التعنا بانت بتفريق الحاكم (۸) وإن قذف بولد نفى نسبه وألحقه بأمه (۹) فإن أكذب نفسه حد (۱۰) وله أن ينكحها (۱۱) وكذا إن قذف غيرها فحد أو زنت فحدت

**ترجمه** :اودلعان طريقه هغه ده كومه چې ايت مبارك بيان كړي ده نوكه دواړو لعان وكړنوښځه بائنه كرځي دحاكم په تفريق سره ،اوكه خاوند په بچي سره تهمت ولګاوونو دهغه دنسب به نفى كړي اوملحق به يې كړي په خپلې مورپوري ،اوكه ده دخپل ځان تكذيب وكړنو حد به وربانديي جاري كيږي ،اوملاعن لره جائزده چې له دي سره نكاح وكړي ،همداشان كه له ښځې څخه ماسواپه كوم بل چاتهمت ولګوي اوپرده حدجاري شي ياهغه زناوكړي اوپرهغې حدجاري شي .

**تشريح** :(۷)دلعان طريقه هغه ده كومه چې په سوره نوراومباركواحاديثو كې بيان شوي ده چې قاضي به دواړه زوجين حاضركړي اودلعان ابتداء به خاوندسره وكړي نوهغه به څلورځله ګواهي وركړي هرځل به وايې چې زه الله ﷻ ګواه جوړوم چې كوم تهمت دزناماپردي لګولى دى په هغه كې زه رشتياويونكى يم اوپنځم ځل به ووايې ماچې پردي ښځه كوم تهمت لګولى دى كه زه په هغه كې درواغجن يم نوپرمادي دالله تعالى لعنت وي ،اوخاوندبه ددي خبروكولوپروخت دښځې طرف ته اشاره كوي ،بيابه همداشان ښځه څلورځلكه ګواهي وركوي اوهرځل به وايې چې زه پرالله ﷻ په قسم سره ګواهي وركوم چې دي كس چې پرماكوم دزناتهمت لګولى دى په هغه كې دى درواغجن دى اوپنځم ځل به ووايې چې ده چې كوم دزناكاري تهمت لګولى دى كه دى به دي كې رشتياويونكى وي نوپرمادي دالله تعالى غضب وي .

ف:دښځې په طرف كې په پنځم ځل دپرمادي لعنت وي پرځاى پرمادي غضب وي په دي وجه غوره شوى دى چې ښځې په خپل كلام كې دلعنت استعمال په كثرت سره كوي نودانس په وجه به په داسې موقع كې ښځه په هغه سره دشيرا كولو جسارت وكړي اوله په غضب دعدم انس په وجه په شيراكې له جسارت څخه پرهيزكوي .

ف:كه زوجينولعان وكړنوددوئ په منځ كې تفريق واقع كيږي مګرپه محض لعان كولوسره فرقت نه واقع كيږي بلكه قاضى به ددوئ ترمنځ تفريق كوي نوكه دقاضى له تفريق څخه وړاندي په دوئ كې كوم يووفات شونوهغه بل به يې وارث وي، دا فرقت دطرفينوپه نزدطلاق بائن دى ولى چې دافرقت دعنين په شان دقاضى په تفريق سره راغلى دى نودفرقت عنين په شان به داهم طلاق بائن وي .دامام ابويوسف رحمه الله په نزدپه لعان سره حرمت ابدى ثابتيږي لهذاداښځه به دده په حق كې د هيمشه لپاره حرامه وي لقوله ﷺ ﴿المتلاعنان لايجتمعان أبدا﴾ (يعنى لعان كونكې خاونداوښځه به كله هم سره جمع نه شي.

ف:دطرفينوقول راجح دى لماقال المفتي غلام قادر النعماني :القول الراجح هوقول الطرفين ..........الى ان قال وقال العلامة محمدابراهيم الحلبي وهوای التفريق طلقة بائنة على الصحيح فيجب العدة مع النفقة والسكنى وهذاعندالطرفين (القول الراجح: ۱/۳۶۱)

(۸)كه كوم كس پرخپله ښځه دزناتهمت په دي ډول سره پوري كړچې دښځې دبچي طرف ته په اشاره كولوسره يې وويل چې دابچى زماله نطفې څخه نه دى ،نودده داقول هم موجب لعان دى ،نولعان څخه وروسته به قاضى ددي بچي نسب له دى كس څخه نفى كوي اوبچى به په مورپوري ملحق كوي ولى چې له حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه مروى ده چې نبى كريم ﷺ له لعان څخه وروسته بچى په مورپوري ملحق كړى وو .

(۹)اوکه له لعان څخه وروسته خاوندله خپل قول څخه رجوع وکړه اودخپل ځان تکذيب يې وکړيعنی وي ويل چې ماپرخپلې ښځې په درواغو تهمت لګولی وونوقاضی به پرده حدقذف جاري کوي ولی چې ده په خپل تکذيب کولوسره پرخپل ځان دحدقذف دواجبيدلواقرارو کړنوداقرارپه وجه به پرده حدقذف جاري کيږي .

(۱۰)دطرفينوپه نزدخاونددخپل ځان له تکذيب څخه وروسته له دې ښځې سره نکاح کولی شي ولی چې کله پرخاوند حد قذف جاري شونودي اهل شهادت پاتې نه شو ځکه نوپه ده کې دلعان اهليت هم پاتې نه شونودتحريم نکاح کوم حکم چې په لعان پوري متعلق وو هغه هم مرتفع شو.دامام ابويوسف رحمه الله په نزداوس دده نکاح له دې ښځې سره کله هم نشي کيدای .

(۱۱)همداشان که کوم کس پرکومه اجنبيه ښځې دزناتهمت ولګاووبياپردې کس حدقذف جاري شونوهم دې کس لره له دې ښځې سره نکاح کول جائزده لماپينا،همداشان که زوجينوقبل الدخول لعان وکړيناوروسته ښځې زناوکړه اوبياپردې دزناحدجاري شونوهم دې خاوندلره له دې ښځې سره نکاح کول جائزده لی چې له حدڅخه وروسته په دې ښځه کې دلعان اهليت پاتې نه شولهذاداتحريم نکاح حکم هم مرتفع شو.

(۱۲)وَلَا لِعَانَ بِقَذْفِ الْأَخْرَسِ وَلَا بِنَفْيِ الْحَمْلِ (۱۳)وَتَلَاعَنَا بِزَنَيْتِ ,وَهَذَا الْحَمْلُ منه ولم يَنْفِ الْحَمْلَ (۱۴)وَلَوْ نَفَى الْوَلَدَ عِنْدَ التَّهْنِئَةِ وَابْتِيَاعِ آلَةِ الْوِلَادَةِ صَحَّ ,(۱۵)وَبَعْدَهُ لَا وَلَاعَنَ فِيهِمَا)(۱۶)وَإِنْ نَفَى أَوَّلَ التَّوْأَمَيْنِ ,وَأَقَرَّ بِالثَّانِي حُدَّ)إِلَّا أَنَّهُ أَكْذَبَ نَفْسَهُ بِدَعْوَى الثَّانِي قال رَحِمَهُ اللهُ(۱۷)وَإِنْ عَكَسَ لَاعَنَ وَيَثْبُتُ نَسَبُهُمَا فِيهِمَا

**ترجمه**:اولعان نشته دګونګی په تهمت لګولوسره اودحمل په نفی کولوسره ،اودواړه به لعان کوي په دې وينا سره چې تازناکړي ده اوداحمل له زناڅخه دی اوحمل به نه نفی کيږي ،اوکه يې دبچی نسب نفی کړدمبارکۍ پروخت يادااسباب ولادت اخيستلوپروخت نوصحيح دی ،اوله دې څخه وروسته صحيح نه دی ،اولعان به کوي په دواړوکې ،اوکه يې اول نفی کړله غبرګولیانوڅخه اواقرريې وکړددوهم نوحدبه ورکول کيږي اوکه يې ددې عکس وکړنولعان به کوي اوددواړونسب ثابتيږي په دواړوصورتونوکې.

**تشريح** :(۱۲)که ګونګی پرخپله ښځه دزناتهمت ولګاوونوله دې سره لعان تعلق نه نيسي ولی چې لعان په صريح قذف (تهمت )پوري متعلق وي لکه څرنګه چې حدقذف په صريح په صريح قذف سره واجبيږي حال داچې دګونګی په تهمت لګولوکې شبه موجوده ده والحدودتندرئ بالشبهة (اوحدوددشبه په وجه سره دفع کيږي )همداشان که خاوندخپلې ښځې ته وويل چې ستاداحمل له ماڅخه نه دی نوپه دې کې هم لعان نشته ولی چې قيام حمل يقيني نه دی ممکنه ده چې دهواياناروغي په وجه دې دښځې نس پرسيدلی وي ،اودصاحبينوپه نزدلعان شته په دې شرط چې په شپږمياشتې کې دننه بچی پيداشي ولی چې له شپږو مياشتوڅخه په لږوخت کې دبچی په پيداکيدلوسره معلومه شوه چې دتهمت پروخت حمل موجودوو.

(۱۳)که خاوندخپلې ښځې ته وويل چې تازناکړي ده اوداحمل له زناڅخه دی نوزوجين به لعان کوي ولی چې دلفظ زنادصراحة موجودوالی په وجه سره دزناتهمت متحقق شولهذالعان واجب دی ، البته

قاضي به د دی حمل د نسب نفی له ده څخه نه کوي ولی چې د بچی نفی کول د بچی له احکامو څخه یو حکم دی او احکام ولد له ولادت څخه وروسته مرتب کیږي نه له ولادت څخه وړاندي.

(۱۴) که خاوند د خپلې ښځې د بچی له پیدا کیدلو څخه وروسته هغه وخت د بچی نسب له خپل ځان څخه نفی کړیه کوم وخت کې چې د بچی مبارکی اخیستل کیږي یا یې هغه وخت نفی کړ کوم وخت چې د پیدائش شیان اخیستل کیږي نو په دې دواړو صورتونو کې نفی کول صحیح ده (یعنی له خاوند څخه د بچی نسب نه ثابتیږي) ولی چې خاوند نه صراحة د ماشوم د نسب اعتراف کړی دی او نه دلالة، او د دي نفی ولد په وجه به خاوند لعان کوي ولی چې د ولد د نفی په وجه سره خاوند تهمت لګونکی شو.

(۱۵) قوله وبعده لا ای لو نفی الولد بعد التهنئة او ابتياع آلة الولادة لا يصح نفيه ،یعنی که خاوند له دي وختونو څخه وروسته د ماشوم نسب نفی کړنو دا نفی صحیح نه ده بلکه د ماشوم نسب به له ده څخه ثابتیږي ولی چې ده دلالة د ثبوت نسب اعتراف کړی دی او دلالة اعتراف د ده سکوت او د مبارکی قبلول دي دا د امام ابو حنیفه ﷬ مسلک دی .د صاحبینو په نزد د نفاس په مده کې د دنه د ماشوم نفی کول صحیح ده ولی چې په مده قصیره کې د ماشوم نفی صحیح ده او په مده طویله کې صحیح نه ده د دوئ په منځ کې فاصل مدت نفاس دی ولی چې نفاس د ولادت اثر دی او په مذکوره بالا دواړو صورتونو کې به لعان کوی ولی چې تهمت صراحة موجود شو.

ف: د امام ابو حنیفه ﷬ قول راجح دی لما قال المفتي غلام قادر النعماني: القول الراجح هو قول ابی حنیفه ﷬: قال علاء الدين الحصكفي: والصحيح قول الامام (القول الراجح: ۱/۳۶۳)

(۱۶) که کومې ښځې له یوه نس څخه دوه ماشومان وزیږول یعنی د دواړو ماشومانو د زیږدلو په منځ کې له شپږو میاشتو څخه لږ فاصله وه او خاوند د اول ماشوم نسب نفی کړ او د دوهم اقرار یې وکړنو پر خاوند به حد قذف جاري کیږي ولی چې ده د دوهم ماشوم د نسب دعوی کولو په وجه خپل ځان دروغجن کړ ګویا دی وایي چې ما د اول ماشوم د نسب به نفی کولو سره په دروغو تهمت لګوی دی.

(۱۷) قوله وان عكس لا ای ان اقر باول التوامين ونفى الثاني لا يحد،یعنی که خاوند د اول ماشوم د نسب اعتراف وکړ او د دوهم نفی یې وکړه نو پر خاوند حد قذف واجب نه دی بلکه لعان واجب دی ولی چې خاوند د دوهم ماشوم د نسب په نفی کولو سره تهمت ولګاوو او له نفی څخه وروسته یې په رجوع کولو سره خپل ځان دروغجن کړی نه دی ځکه نو حد قذف نه پر جاری کیږي او لعان واجب دی ،او په دواړو مسئلو کې د دواړو ماشومانو نسب له خاوند څخه ثابتیږي ولی چې دواړه ماشومان غبرګولې دي له یوي نطفې څخه پیدا شوي دي نو دا څرنګه کیدای شي چې یو دي د ده بچی وي او بل دي نه وي.

## بَابُ الْعِنِّينِ وَغَيْرِهِ

دا باب د نامرد په بیان کې دی

عنین په لغت کې هغه ته وایې کوم چې پرجماع قادرنه وي اوشرعی تعریف یې مصنف رحمه الله په دي ډول کړي دی چې عنین هغه دی کوم چې له ښځوسره په جماع کولو قدرت نه لري یاخوله ثیبه سره جماع کولی شي مګرله باکري سره په جماع کولوقادرنه وي نودباکري په حق کې داکس عنین شمارل کیږي .څینې حضراتویې داسې تعریف کړی دی چې عنین هغه دی دچاچې عضوتناسل موجودوي مګرهغه له ښځوسره په جنسی تعلقاتوقادرنه وي .

له ماقبل سره یې مناسبت دادی چې مصنف رحمه الله له دي ځخه وړاندي دهغوخلګواحکام بیان کړل کوم چې دنکاح قابل وو بیایې دطلاق احکام ذکرکړل اوس دهغوخلګواحکام بیانوي کوم چې دناح قابل نه دي یعنی دنامرداحکام .

(۱)هومن لَا یَصِلُ إِلَى النِّسَاءِ اَو یَصِلُ إِلَى الثَّيِّبِ دُونَ الْأَبْكَارِ (۲)وَجَدَتْ زَوْجَهَا مَجْبُوبًا فُرِّقَ فِي الْحَالِ(۳)وَأُجِّلَ سَنَةً لَو عِنِّينًا اَو خَصِيًّا(۴)فَإِنْ وَطِئَ،وَإِلَّا بَانَتْ بِالتَّفْرِيقِ إِنْ طَلَبَتْ (۵)فَلَوْ قَالَ وَطِئْتُ ,وَأَنْكَرَتْ ,وَقُلْنَ بِكْرٌ خُيِّرَتْ ,وَإِنْ كَانَتْ ثَيِّبًا صُدِّقَ بِحَلِفِهِ (۶)وَإِنْ اخْتَارَتْهُ بَطَلَ حَقُّهَا (۷)ولم يُخَيَّرْ أَحَدُهُمَا بِعَيْبٍ

**ترجمه** :عنین هغه ته چې ښځوته نشي رسیدلی یاثیبې ته خورسیدلی شي نه باکروته ،که ښځې خپل خاوندمقطوع الذکرومونده نو فی الحال به تفریق کیږي اویوکال به مهلت ورکول کیږي که نامردوو یاخصی وو ،نوکه یې وطی وکړه نوبهتره ده که نه نو ښځه بائنه ګرځي دقاضي په تفریق سره که هغه مطالبه وکړي ،نوکه خاوندوویل چې ماوطی وکړه اوښځه انکاروکړي اوښځوویل چې هغه ښځه باکره ده نوښځې لره به اختیارورکول کیږي اوکه ثیبه وی نودخاوندتصدیق به کیږي دهغه له قسم سره ،اوکه ښځې خاونداختیارکړنوددي حق باطلیږي ،اوپه دواړوکې به یوه لره هم اختیارنه ورکول کیږي دعیب په وجه سره .

**تشریح** :(۱)مصنف رحمه الله دعنین شرعی تعریف په دي ډول سره کړی دی چې عنین هغه دی کوم چې له ښځوسره په جماع قادرنه وي یاله ثیبه ښځې سره خوجماع کولی شي مګرله باکره سره پرجماع کولوقادرنه وي نودباکري په حق کې داکس عنین شمارل کیږي .

(۲)که خاوندمجبوب (یعنی مقطوع الذکروالخصیتین معااومقطوع الذکرفقط)وي اوښځې دتفریق مطالبه وکړه نوحاکم به خاوندته له مهلت ورکولو ځخه بغیرپه دواړوکې فی الحال تفریق وکړي ولی چې دمقطوع الذکرله طرف ځخه وطی متوقع نه ده لهذاده لره په مهلت ورکولو کې هیڅ فائده نشته .

(۳)که خاوندنامردوي اوښځه دتفریق مطالبه وکړي نوحاکم به (دعلاج لپاره )خاوندته یوکال مهلت ورکړي همداله حضرت عمر،حضرت علی اوحضرت ابن مسعود رضی الله عنهم ځخه مروی ده وجه یې داده چې کال په څلورمختلفوموسمونوباندي مشتمل وي که نامردي دده پیدائشي نه وي بلکه دکومې ناروغې په وجه سره وي نوممکنه ده چې په کوم موسم کې جوړشي لهذاله مهلت ورکولوبغیرېه تفریق نه کیږي .همداشان که خاوندخصی وي نوهم به ده ته دنامرپه شان مهلت ورکول کیږي ولی چې ممکن ده چې دده په آله کې انتشارراشي اوپه وطی قادرشي ،خصی هغه دی چې خصیتین یې کښل شوي وي اوآله یې پاتې وي .

(۴)نو كه په ټول كال كې ده يوځل هم له خپلې ښځې سره وطى وكړه نو فبها ونعمت (نو دزوجينو په منځ كې به تفريق نه كيږي)،او كه يې په ټول كال كې يوځل هم وطى ونه كړای شوه او خاوند طلاق وركولو ته هم تيارنه وو.اوښځې دتفريق مطالبه وكړه نوحاكم به ددوئ په منځ كې تفريق كوي ولې خاوندلره چې كله امساک بالمعروف متعذرشونوتسريح بالاحسان واجب ده نوچې زوج ددي واجب له اداء كولوڅخه منع شونوقاضي به دده قائم مقام وي ترڅوله ښځې څخه ظلم دفع شي .اودحاكم داتفريق يو طلاق بائن دى ولې چې له طلاق بائن څخه بغيرله ښځې څخه ظلم نه دفع كيږي ،نوكه خاوندله دي سره خلوة صحيحه كړې وو نوښځې لره پوره مهردى كه نه نو نصف مهرلازم دى .

(۵)كه دكال له پوره كيدلو څخه وروسته خاوندوويل چې ماجماع وكړه اوښځه انكاركوي نوتجربه كاري ښځې به داوګوري كه له كتلووروسته ښځوويل چې داخودپخوا په شان باكره ده له دې سره وطى نه ده شوي نوښځې ته به اختياروركول كيږي ولې چې ددي حق ثابت شو،اوكه كتونكوښځو وويل چې داخوثيبه ده نوبيادزوج دقول مع اليمين تصديق كيږي ولې چې ثيوبت دښځوپه وينا سره ثابتيږي اودثبوت ثيوت لپاره داضروري نه ده چې له ښځې سره به جماع شوي وي ولې چې دزوال بكارت نوراسباب هم شته لهذادخاوند دقول به بغيرله يمين څخه تصديق نه كيږي ،همداراز خاوند دحق فرقت څخه منكردى واليمين على من انكر.

ف:دښځې ثيبه والى يا باكره والى په دې طريقه سره معلوميداى شي چې دښځې په شرمګاه كې دچرګې كوچنى هګۍ داخله كړي كه هغه په اسانۍ سره داخله شوه نوثيبه ده كه نه نو باكره ده ،يادي هګۍ ماته كړاى شي اودښځې په شرمګاه كې دي توى كړي كه هغه دننه ولاړه نوښځه ثيبه ده كه نه نو باكره ده . دامخكني طريقې دي نن صبا ډاكټران دنويوآلاتوپه ذريعه سره قطعي تحقيق كولى شي ځكه به نن صبا په ډاكټر تحقيق كيږي .

(۶)اوكه ښځې خپل نامردخاونداختياركړدجلاوالى مطالبه يې پريښودله نوددې دجلاوالى حق باطل شوولې چې دي دخپل حق په بطلان په خپله رضاظاهره كړې ده ،اوكه ښځې فرقت اختياركړ نوقاضي به خاوندته ووايې چې دي ته طلاق بائن وركړه كه هغه انكاروكړ نوقاضي به په خپله ددوئ په منځ كې تفريق وكړي .

(۷)په زوجينوكې به يوه لره هم دهغه بل دكوم عيب په وجه سره دفسخ نكاح اختيارنه وي مثلاً ښځه مجنونه يادجزام يابرص په مرض اخته وي نوخاوندلره دفسخ نكاح حق نشته ولې چې دمرګ په وجه سره دوطى فوت كيدل فسخ نكاح نه واجبوي چنانچه له زوجينوڅخه دكوم يوه مرګ مهرنه ساقطيږي نودمذكوره عيبونوپه وجه خوپه وطى كې خلل واقع كيږي نوپه طريقه اولى سره نكاح نه فسخ كيږي .همداشان كه په خاوندكې كوم عيب وي مثلاًمجنون وي يادجزام يابرص په مرض اخته وي نودشيخينوپه نزدښځې لره دفسخ نكاح اختيارنشته ولې چې پرخاوندواجب خوله ښځې سره په وطى كولوددى مهرتصحيح دى اوپه زوج كې داخبره متحققه ده حال داچې دنكاح دفسخ كولوپه صورت كې دخاوند حق باطلول لازميږي ،پاتې

شودعنين وغيره په صورت کې څرنګه چې مقصودنکاح (وطی ) بالکليه فوتيږي په ذي وجه هلته دفسخ نکاح اختياروركول کيږي ،امام محمد رحمه الله. له ښځې څخه ددفع ضررلپاره په عنين اومجبوب په قياسولوسره ښځې ته دفسخ نکاح اختيارورکوي .

ف:دامام محمد رحمه الله پرقول به فتوی ورکول کيږي لمافی الهندية :قال محمداذاکان الجنون حادثايؤجله سنة کالعنة ثم يخير المراة بعدالحول اذالم يبراوان کان مطبقافهو کالجب وبه ناخذ کذافی الحاوی القدسی (الهندية: ۱/۵۲۶)

ف:دزوجه مجنون په باره کې تفصيل په حيله ناجزه کې موجوددی چې په هغه کې حضرت حکيم الامت فرمايي :دامام محمد رحمه الله په نزددي (دمجنون ښځې لره )لره داحق حاصل دی چې قاضی ته درخواست ورکړي اودتفريق مطالبه وکړي او خپل ځان دمجنون له زوجيت څخه خلاصه کړي .....خلاصه داشوه چې له کوم مجنون څخه ناقابل برداشت ايذاء رسيږي دهغه مذکوره بالاحکم دی والله اعلم .....

اوکوم شرطونه داختيارچې دزوجه عنين دپاره دي له هغوڅخه اکثرشرائط اختياردزوجه مجنون دپاره هم دي چې دهغواجمال دادی (الف)له نکاح څخه وړاندي به ښځې ته دخاوند دمجنون والی علم نه وي .(ب)له نکاح څخه وروسته په عالميدوسره به يې درضاتصريح نه وي کړي .(ج)کله چې دمهلت دکال په تيريدلوسره په دوهم ځل درخواست سره قاضی ښځې ته اختيارورکړي نوښځه به په دغه مجلس کې فرقت اختياروي که مجلس ختم شويا ښځه په خپله يادچاپه اوچتولوسره اوچته شوه نواختيارنه پاتې کيږي (وهذه الشروط وان لم تکن مصرحة فی کتبناالاان القواعدالکلية المصرحة فی المذهب تقتضيهافان امثال هذه الاختيارات تتقيدبالمجلس وتبطل بالعلم قبل العقدوبتصريح الرضابعدالعقدوظاهرعبارة العالمگيرية فی قول محمديؤجله سنة کالعنة ثم يخيرالمرأة بعدالحول يؤيده والله أعلم )،(د)دزوجه مجنون دپاره يوشرط داهم دی چې دجنون موجب للفسخ دعلم له حاصليدلو څخه وروسته په خپل اختيارسره ښځې دجماع يادواعی جماع موقع نه وي ورکړي ،بخلاف العنين فان المقصودفيه اختياروالامتحان (وهذاالشرط ايضاغيرمصرح فی کتبناولکنه مفادالقواعدعندناومصرح فی کتب المالکية کماسيأتی من شرح الدردير فی الفائدة الاتية ).(ه)دزوجه عنين په څيرزوجه مجنون هم له خپل خاوندڅخه په جلاکيدلوکې خودمختاره نه ده بلکه قضاء قاضی شرط ده اوپه کوم ځای کې چې قاضی نه وي هلته به شرعی جرګه دقاضی قائم مقام وي لکه چې په مقدمه کې تيرشو .(حيله ناجزه ص۵۲تا۵۵)

ف:دزوجه مجنون دفسخ نکاح لپاره چې کوم شرائط لوړذکرشول که هغه شرائط په کوم ځای کې موجودنه وونوبيابنابرجنون تفريق نه شي کيدلای ليکن که دامجنون دمعاش کومه ذريعه نه لري اودزوجي لپاره کومه بله لارهم نه وي نوپه دي صورت کې دمفتی لپاره دښځې داضطرارله پوره محقق کيدلواودڅوعلماؤله مشوري څخه بعدددي فتوی ګنجائش شته چې دمذهب مالکی په بناء دعدم نفقه په وجه په قاضی يادهغه په قائم مقام په دوئ دواړوکې تفريق وکړي اوداتفريق به دطلاق رجعی په حکم کې وي ........ليکن په دي کې له کامل تدبرڅخه په کاراخيستلودمذهب مالکی دټولوشرائطوپابندي کول ضروري ده په کوموکې چې يوشرط دادی چې دعدم نفقه په وجه سره دفسخ نکاح حکم هغه وخت ورکول کيدای شي چې له عقدنکاح څخه وړاندي دي ته دخاونددفقيراوغريب والی علم نه وي که نه نو که دفقيروالی له علم سره سره عقدنکاح وکړل شونوبوجه عدم نفقه به دي لره دمطالبه تفريق حق نه وي الخ .(حيله ناجزه :ص۵۸)

## بَابُ الْعِدَّةِ

### داباب دعدت په بیان کې دی

عدت (دعین په کسره سره )په لغت کې شمارلواوګڼلوته ویل کیږي اودفقه په اصطلاح کې هغه مدت ته ویل کیږي په کوم کې چې دنکاح صحیح له ختمیدلو ،یاپه نکاح فاسد کې دقاضی له طرف څخه دجلا والی له فیصلې یاپه خپل منځ کې دفیصلې په وجه له یوبل څخه ترک تعلق یادشبه په وجه له وطی کولووروسته خپل ځان منع وساتي .

له ماقبل سره مناسبت دادی چې عدت څرنګه چې دخپل وجودپه لحاظ سره شرعاًپه فرقت نکاح مرتب کیږي اوفرقت دنکاح اثردی ځکه یې له وجوه فرقت یعنی طلاق ،ایلاء ،خلع اولعان څخه وروسته عدت ذکرکړولې چې اثرله مؤثر څخه وروسته وي .

(۱)هِيَ تَرَبُّصٌ يَلْزَمُ الْمَرْأَةَ (۲)عِدَّةُ الْحُرَّةِ لِلطَّلَاقِ أَوِ الْفَسْخِ ثَلَاثَةُ أَقْرَاءٍ أَيْ حِيَضٍ (۳)أَوْ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ إِنْ لَمْ تَحِضْ (۴)وَلِلْمَوْتِ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٍ (۵)وَلِلْأَمَةِ قُرْءَانِ وَنِصْفُ الْمِقْدَارِ (۶)وَلِلْحَامِلِ وَضْعُهُ (۷)وَزَوْجَةُ الْفَارِّ أَبْعَدُ الْأَجَلَيْنِ

**ترجمه**:عدت هغه انتظاردی کوم چې پرښځه لازمیږي ،دازادې ښځې عدت دطلاق اوفسخ نکاح لپاره درې قروء دي یعنی درې حیضه ،یادرې میاشتې دي که دې ته حیض نه ورتو ،اودوفات لپاره څلور میاشتې اولس ورځې دي ،اودمینځې لپاره دوه قروء دي اودحره دعدت لپاره دمقررمدت نصف دی ،اودحامله لپاره وضع حمل ده ،اودزوجه الفارلپاره له دوومدو څخه ابعدده .

**تشریح**:(۱)مصنف رحمه الله دعدت مختصرشرعی تعریف کړی دی چې عدت هغه انتظارته ویل کیږي کوم چې پرښځه (له زوال نکاح یاشبه نکاح یافراش څخه وروسته )لازمیږي .

(۲)که چاخپلې ښځې ته طلاق بائن یاطلاق رجعی ورکړیادوئ دواړ ترمنځ بغیرله طلاق څخه فرقت واقع شو(مثلاًښځې اب الزوج ته پرخپل ځان قدرت ورکړ)اوداښځه ازاده وي اوله ذوات الحیض څخه وي نوددې عدت دطلاق اوفرقت له وخت څخه درې قروء یعنی درې کامل حیضونه دي ،که یې دحیض په حالت کې طلاق ورکړنوداحیض نه شمارل کیږي .

دعدت په باره کې په واردشوې ایت ﴿وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ﴾ (مطلقه ښځې دې خپل ځانونه تردریو حیضونوپورې په انتظارکې وساتي )کې دقروء له لفظ څخه دامام شافعی رحمه الله اوامام مالک رحمه الله په نزدطهر مراددی لهذاددوئ په نزدعدت درې طهره دي مګردااحنافوپه نزدله قروء څخه مرادحیض دی لهذاعدت درې حیضه دي .

(۳)که ازادې ښځې ته دصغرسنې (یعنی دعمردلږوالی )په وجه سره یادسپین سروالی په وجه سره حیض نه ورتونوددې عدت به درې میاشتې وي لقوله تعالی ﴿وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ﴾ (یعنی ستاسې له مطلقه ښځوڅخه چې کومې ښځې دزیادت عمرپه وجه له حیض څخه مایوسې شوې دي که ستاسې ددوئ په عدت کې شک وي نوددوئ عدت درې میاشتې دي اوهمداشان کوموښځوته چې تراوسه پورې دکم عمرې په وجه سره حیض نه وي ورغلی ).

(۴)که دازادي ښځې خاوندوفات شونوددي عدت څلورمیاشتې اولس ورځې دی خواه که ښځه مدخول بهاوي یاغیر مدخول بهاوي ،خواه که بالغه وي یانابالغه وي ،خواه که مسلمانه وي یاکتابیه وي ،له ذوات الحیض څخه وي یاله غیر ذوات الحیض څخه وي لقوله تعالی ﴿ وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا ﴾(یعنی کوم خلک چې وفات کیږي له تاسې څخه اوپریږدي ښځې نوداښځې دي خپل ځانونه څلورمیاشتې اولس ورځې په انتظارکې ساتې).

(۵)قوله والامة قرءان ولصف المقدرای عدة الامة حیضتان ولصف ماهو مقدرفی حق حرة ،یعنی که متوفی عنهازوجها مینځه وي نوددي عدت طلاق دوه حیضه دي اوکه هغه دصغرسنی یاکبرسنی په وجه له ذوات الحیض څخه نه وه نوعدت طلاق یې دازادي ښځې لپاره دمقررشوي مدې نصف دی یعنی یوه میاشت اونیمه ورځې دي ،اوکه عدت وفات تیروي نوددي عدت دوه میاشتې اوپنځه ورځې دي لقوله ﷺ ﴿طلاقة الامة تطليقتان عِدَّةُ الأَمَةِ حَيْضَتَانِ ﴾ (دمینځې طلاقونه دوه دي اوددي عدت دوه حیضه دي ) وجه استدلال داده چې نبی کریم ﷺ درقیت په وجه سره دطلاق اوعدت طلاق تنصیف کړي دی لهذاعدت وفات تنصیف به هم کیږي نودڅلورمیاشتې اولسوورځوپرځای به دوه میاشتې اوپنځه ورځې وي.

(۶)قوله والحامل وضعه ای وعدة الحامل وضع الحمل ،یعنی که متوفی عنهازوجهاحامله وي نوددي عدت وضع حمل دی خواه که ازاده وي یامینځه وي ولې چې دباری تعالی قول ﴿ وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ﴾ (یعنی دکوموپه نس کې چې ماشوم وي دهغوئ عدت داچې وزیږوي ماشوم )مطلق دی په دي کې دازادي اومینځه هیڅ تفریق نه ده شوي.

**سوال**:که دمطلقه یامتوفی عنهازوجهاپه نس کې ماشوم وفات شواووچ شونوددي عدت به څه وي؟

**ځواب**:ددواء یااپریشن په ذریعه سره دي صفائي وروکړای شي که حمل دڅلورومیاشتویازیات وخت وونوپه دي طریقه په اسقاط سره عدت ختم شوکه نه نو ددري حیضه په تیریدلوسره عدت ختمیږي. (احسن الفتاوی:۴۲۹/۵)

(۷)قوله وزوجة الفارابعدالاجلین ای وعدة زوجة المریض بمرض الوفات ابعدالاجلین من عدة الطلاق والوفات ،یعنی دزوجة الفار عدت ابعد الاجلین دی (یعنی که کوم مریض په خپل مرض الموت کې خپلې ښځې ته یوطلاق بائن یادري طلاقه ورکړل بیادښځې په عدت کې خاوندوفات شوداسې کس ته دشریعت په اصطلاح کې فارویل کیږي دفارلغوی معنی تښتیدونکی دی نوګویادی خپلې ښځې ته په طلاق ورکولوسره ددي له میراث څخه تښتي )نودده ښځه به وارثه وي او ددي ښځې عدت به ابعدالاجلین وي یعنی پردي ښځې دطلاق په وجه سره دري حیضه تیرول واجب دي اودخاونددوفات په وجه څلور میاشتې اولس ورځې تیرول واجب دي په دي کې چې ده کوم یوه مدت زیات وي هغه به تیروي.

نوکه دري حیضه تیرشول لیکن څلورمیاشتې اولس ورځې لانه وي پوره شوي نوویل کیږي به چې تراوسه عدت نه ده تیرشوی ترڅوچې څلورمیاشتې اولس ورځې پوره شي اوکه څلورمیاشتې اولس ورځې تیري شوي لیکن تراوسه لادري حیضه نه ووتیرشوي په دي دول چې ښځه ممتدة الطهروه نوهمدابه ویل کیږي چې تراوسه عدت نه دی تیرشوی ترڅوچې دری حیضه پوري شوي نه وي که څه هم ترمدت ایاس

پوري انتظار و غواړي دا د طرفینو رحمهما الله مسلک دی ،دامام ابویوسف رحمه الله په نزد د دي عدت صرف دري حیضه دی .

ف: د طرفینو قول راجع دی لما فی الدر المختار: (ولی) حق (امراة الفار من) الطلاق (البائن) ان مات وهی فی العدة (ابعد الاجلین من عدة الوفات وعدة الطلاق) احتیاطا الخ (الدر المختار علی هامش رد المحتار: ٢/٦٥٧)

(٨) وَمَنْ عَتَقَتْ فِي عِدَّةِ الرَّجْعِيِّ (٩) لَا الْبَائِنِ وَالْمَوْتِ كَالْحُرَّةِ (١٠) وَمَنْ عَادَ دَمُهَا بَعْدَ الْأَشْهُرِ الْحَيْضُ (١١) وَالْمَنْكُوحَةُ بِنِكَاحٍ فَاسِدٍ، وَالْمَوْطُوءَةُ بِشُبْهَةٍ، وَأُمُّ الْوَلَدِ الْحَيْضُ لِلْمَوْتِ وَغَيْرِهِ

**ترجمه**: او کومه چې ازاده شې د طلاق رجعی په عدت کې نه د بائن او مرګ په عدت کې هغه دازادې په څیر ده ،او کومې ښځې ته چې وینه را وګرځي له میاشتو وروسته نو د دي عدت حیض دی ،او هغه منکوحه چې د دي نکاح فاسده شوي وي او هغه چې له دي سره وطی بالشبه شوي وي او دام ولد د دي ټولو عدت حیض دی په مرګ او غیر مرګ دواړو کې .

**تشریح**: (٨) که منکوحه مینځې ته د دي خاوند رجعی طلاق ورکړی یا د دي مولی دا په عدت کې ازاده کړه نو د دي عدت دازادو ښځو د عدت طرف ته منتقل کیږي ولی چې د طلاق رجعي په وجه نکاح نه منقطع کیږي بلکه من کل وجه باقی پاتې وي نو ګویا دي لره د دي مولی د منکوحه والی په حالت کې ازاده کړي ده .

(٩) که کومې مینځې د طلاق بائن عدت تیراو یا د دي خاوند وفات شوي وو او د دي عدت وفات تیراو چې د دي مولی دا ازاده کړه نو په دي صورت کې د دي عدت دازادو ښځو طرف ته نه منتقل کیږي ولی چې د طلاق بائن او مرګ په وجه سره نکاح زائله شوي ده نو ګویا د دي مولی دي لره د غیر منکوحه والی په حالت کې ازاده کړي ده .

(١٠) که مطلقه ښځه په سن ایاس کې وي او دي خپله عده په میاشتو سره تیره کړه بیا دی له سن ایاس څخه وراندي د عادت مطابق وینه ولیدله نو دي چې څومره عدت په میاشتو تیر کړی دی هغه باطل شو او س به بیرته له سره په حیض سره عدت تیروی ولی چې د عادت مطابق د وینې راګرځیدل د دي ایاس باطلوي لهذا دسن ایاس والا عدت هم باطل شو .

(١١) که له کومې ښځې سره نکاح فاسده وشوه (مثلا بغیر شهود نکاح وشوه) یا له کومې ښځې سره وطی بالشبه وشوه (مثلا په غلطی سره د خپلې ښځې پر ځای له کومې بلې ښځې سره وطی وکړه) نو دا سې ښځه به د فرقت یا د واطی د مرګ په صورت کې عدت په حیض سره تیروي (په دي شرط چې دا حامله یا آیسه نه وي) ولی چې پر دا سې ښځې خو عدت د رحم د پاکوالی د معلومولو لپاره وي نه چې د نکاح د حق اداء کولو لپاره ،او د رحم د پاکوالی علم په حیض حاصلیږي ،همدا شان که دام ولد مولی مړ شو یا مولی ام ولد ازاده کړه نو د دي عدت به حیض وي کما فی الوطی بالشبهة .

(١٢) وَزَوْجَةُ الصَّغِيرِ الْحَامِلِ عِنْدَ مَوْتِهِ وَضْعُهُ (١٣) وَالْحَامِلِ بَعْدَهُ الشُّهُورُ (١٤) وَالنَّسَبُ مُنْتَفٍ فِيهِمَا (١٥) وَلَمْ تَعْتَدَّ بِحَيْضٍ طُلِّقَتْ فِيهِ (١٦) وَتَجِبُ عِدَّةٌ أُخْرَى بِوَطْءِ الْمُعْتَدَّةِ بِشُبْهَةٍ، وَتَدَاخَلَتَا، وَالْمَرْئِيُّ مِنْهُمَا، وَتُتِمُّ الثَّانِيَةَ إِنْ تَمَّتِ الْأُولَى

**ترجمه**: او د نابالغ د ښځې عدت چې دا حامله وي د ده د مرګ پروخت وضع حمل ده ،او له مرګ څخه وروسته د حامله کیدلو والا عدت میاشتې دي ،او نسب په دواړو صورتونو کې منتفی کیږي ،او نه د شماري هغه حیض

په کوم کې چې طلاق ورکړل شوی دی .او واجبیږی دوهم عدت که له معتدي سره وطی بالشبه وکړل شوه اوپه دواړو کې به تداخل کیږي او کومه وینه چې ښکاره شي هغه به له دواړو څخه شمارل کیږي اوپوره دي کړي دوهم عدت که اول عدت پوره شوي وي .

**تشریح** :(۱۲)که نابالغ هلک (له کوم څخه حمل نه شي اخیستل کیدای )مړشو اوخپله ښځه یې په داسې حال کې پریښودله چې حامله وه نوددي عدت دطرفینوپه نزدوضع حمل ده ولی چې ارشادباری تعالی ﴿ وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ﴾ یعنی دکوموپه نس کې چې ماشوم دی دهغوعدت دادی چې ماشوم وزیږوي )مطلق دی .دامام ابویوسف رحمه الله په نزددی عدت څلورمیاشتې اولس ورځې دی ولی چې حمل ثابت النسب نه دی لهذادادحادث بعدالموت په څیردی .

**ف** :دطرفینوقول راجح دی لمافی الدرالمختار:(ولو)کان (زوجها)المیت (صغیرا)غیرمراهق وولدت لاقل من نصف حول من موته فی الاصح لعموم آیة واولات احمال الخ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار:۲/۶۵۶)

(۱۳)قوله والحامل بعده الشهوراى عدة زوجة الصغيرالحامل بعدموته اربعة اشهروعشر ،یعنی که حمل دهلک (زوج )له مرګ څخه وروسته اخیستل شوی وو نوددي عدت څلورمیاشتې اولس ورځې دی ولی چې دمرګ پروخت همداعدت مقررشوی وو لهذاپه وروسته کې دحمل اخیستلوپه وجه نه متغیرکیږي ، اودماشوم نسب په دواړوصورتونوکې نه ثابتیږیولی چې صغیرلره نطفه نه وي نودده له طرف څخه حمل هم متصورنه دی .

(۱۴)که خاوندښځې ته دحیض په حالت کې طلاق ورکړنوهغه حیض به په عدت کې نه شمارل کیږي په کوم کې چې طلاق ورکړل شوی دی ولی چې ددي حیض څه حصه تیره شوي ده (که څه هم ډیره لږتیره شوي وي )نوکه داپه عدت کې شمارکړای شي نوعدت کامل دري حیضه نه کیږي حال داچې په عدت کې دري کامل حیضه تیرول ضروري دي .

(۱۵)که کومه ښځه دطلاق بائن په عدت کې وه چې له دي سره چاوطی بالشبه وکړه نوپردي ښځې دتجددسبب په وجه یوبل عدت واجبیږي اوپه دواړوعدوکې تداخل کیږي اوس چې دي ته کوم حیض له عدت ثانی څخه وروسته ورځې هغه له دواړوعدوڅخه شمارل کیږي که اول عدت پوره شواو دوهم عدت لانه ووپوره شوی نودوهم عدت پوره کول ضروري دی مثلامعتدي داول عدت یوحیض تیرکړچې له دي سره وطی بالشبه وشوه نواوس به دری نورحیضه تیروي په دي ډول به داښځه څلورحیضه تیروي په کوموکې چې به اول حیض له اولنی عدت څخه شمارل کیږي اومنځنی دوه حیضونه به له دواړعدوڅخه شمارل کیږي اواخري حیض به صرف له عدت ثانی څخه شمارل کیږي .

(۱۷)وَمَبْدَأُ الْعِدَّةِ بَعْدَ الطَّلَاقِ وَالْمَوْتِ(۱۸)وَفِي النِّكَاحِ الْفَاسِدِ بَعْدَ التَّفْرِيقِ اَوِ الْعَزْمِ عَلٰى تَرْكِ وَطْئِهَا(۱۹)وَاِنْ قَالَتْ مَضَتْ عِدَّتِي وَكَذَّبَهَا الزَّوْجُ فَالْقَوْلُ لَهَا مَعَ الحلف(۲۰)وَلَوْ نَكَحَ مُعْتَدَّتَهُ وَطَلَّقَهَا قَبْلَ الْوَطْءِ وَجَبَ مَهْرٌ تَامٌّ وَعِدَّةٌ مُبْتَدَاَةٌ(۲۱)وَلَوْ طَلَّقَ ذِمِّيٌّ ذِمِّيَّةً لَمْ تَعْتَدَّ

**ترجمه** :اوعدت ابتداء دطلاق اومرګ څخه وروسته کیږي .اوپه نکاح فاسده کې له تفریق څخه وروسته یادزوج له طرفه دعزم علی ترک الوطی څخه وروسته ،اوکه ښځې وویل چې زماعدت تیرشواوتکذیب وکړددي خاوندنوقول دښځې مع الیمین معتبردی ،اوکه خاوندنکاح وکړه له خپلې معتدي سره بیایې طلاق

ورکړله وطی څخه وړاندي نو واجبیږي کامل مهراونوی عدت ،او که طلاق ورکړ ذمی ذمیه ته نو هغه به عدت نه تیروي.

**تشریح**:(۱۶)دطلاق په صورت کې دعدت ابتداء له طلاق ورکولو څخه وروسته کیږي او دوفات په صورت کې دخاوندله وفات څخه وروسته کیږي ولی چې طلاق او وفات دعدت سببونه دي لهذادعدت ابتداء به له وجودسبب څخه وروسته وي.

**ف**:که خاوند طلاق ورکړ مګرښځې ته معلومه نه شوه یاخاوند وفات شو مګرښځه ناخبره پاتې شوه ترڅو چې دعدت زمانه تیره شوه نودښځې عدت پوره شولهذاله معلومیدلو څخه وروسته به دادعدت اعاده نه کوي ولی چې عدت دزماني دتیریدلونوم دی کله چې زمانه تیره شوه نوعدت پوره شو.

(۱۷)دنکاح فاسدپه صورت کې دمدخول بهاښځې دعدت ابتداء له هغه وخته کیږي کوم وخت چې حاکم دزوجینوپه منځ کې تفریق وکړي یاواطی دترک وطی عزم وکړي یعنی په ژبه سره ووایې چې ترکت وطئهااوترکتها(مادي وطی پریښوده یامادا پریښودله )اوصرف عزم معتبرنه دی ،البته په غیرمدخول بهاکې صرف تفریق بالابدان کافی دی.

(۱۸)که ښځې دعوی وکړه چې زماعدت تیرشوخاونددي تکذیب وکړنودښځې دقول به مع الیمین اعتبارکیږي ولی چې ښځه دځپل ځان په باره کې امینه ده لهذاددي قول معتبردی مګرځرنګه چې دزوج له طرفه پردي دکذب تهمت دی لهذادصاحبینوپه نزدبه دي ته قسم ورکول کیږي.

(۱۹)که خاوند خپلي ښځې ته بائن طلاق ورکړبیاددي عدت له نه ووختم شوی چې خاوند دوهم ځل نکاح ورسره وکړه مګرله وطی اوخلوة صحیحه څخه وړاندي یې بیاطلاق ورکړنود شیخینورحمهماالله تعالی په نزدددوهم ځل نکاح اوطلاق په وجه سره پرخاوندکامل مهرواجب دی اوپرښځې مستقل بل عدت لازم دی ولی چې دشیخینوپه نزدخاوندچې په نکاح اول کې کوم دخول کړی دی هغه دخول په نکاح ثانی کې هم دخول شمارل کیږي لهذاداښځه مدخول بهاده اودمدخول بهالپاره کامل مهرواجب وي اوپردي عدت واجب وي ،دامام محمد رحمه الله په نزدپرخاوندښځې لره دطلاق قبل الدخول په وجه سره نصف مهرواجب دی ولی چې دامام محمد رحمه الله په نزدخاوندچې په اوله نکاح کې کوم دخول کړی دی هغه په نکاح ثانی کې دخول نه شمارل کیږي په همدي وجه پرښځې صرف دمخکنی عدت پوره کول واجب دی.

**ف**:دشیخینوقول راجح دی لمافی الدرالمختار:(نکح )نکاحاصحیحا(معتدته )ولومن فاسد(وطلقهاقبل الوطء ) ولوحکما(وجب علیه مهرتام و)علیها(عدة مبتداءة )(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲/۶۶۵)

(۲۰)که ذمی کس ذمیه ښځې ته طلاق ورکړنودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدپردي ښځې عدت لازم نه دی په دي شرط چې دذمیانوهمداا اعتقادوي ولی چې دشرع دحق په دول پردي عدت نه شي واجبیدلی ځکه چې ذمیه په فروع شرع مخاطب نه ده اودحق زوج په دول هم نه شي واجبیدلی ولی چې زوج یې اعتقادنه لري ،دصاحبینوپه نزدپرذمیه عدت واجب دی.

## فَصلٌ في الإحدادِ

دا فصل دماتم کولو په بيان کې دی

په ماقبل کې وجوب عدت او کيفيت عدت او من عليها العدة بيان شو په دي فصل کې هغه امور بيانيږي د کوموچې کول يانه کول پرمعتدو ښځو واجب دي .

(١) تَحِدُّ مُعْتَدَّةُ الْبَتِّ وَالْمَوْتِ (٢) بِتَرْكِ الزِّينَةِ وَالطِّيبِ وَالْكُحْلِ وَالدُّهْنِ إِلَّا بِعُذْرٍ، وَالْحِنَّاءِ، وَلُبْسِ الْمُعَصْفَرِ، وَالْمُزَعْفَرِ (٣) إِنْ كَانَتْ بَالِغَةً مُسْلِمَةً (٣) لَا مُعْتَدَّةُ الْعِتْقِ وَالنِّكَاحِ الْفَاسِدِ

**ترجمه**: او ماتم دي کوي د طلاق بائن او مرگ عدت تيرونکې ،د زينت او خوشبو او رانجه او تيلو په پريښودلو سره مگر د عذر په وجه او د نکريزو او معصفر او مزعفر جامې داغوستلې په پريښودلو سره ،که ښځه بالغه مسلمانه وي که څه هم مينځه وي ،نه هغه ښځه کومه چې د ازاديدلو او نکاح فاسد عدت تيروي .

**تشريح**: (١) پرمعتده بائنه او متوفی عنها زوجها په دي حال کې چې دا بالغه او مسلمانه وي ماتم کول واجب دی ولی چې نبی کريم ﷺ فرمايلې دي چې کومې ښځې لره د کوم کس پرمرگ تر دريو ورځو زيات ماتم کول جائزنه دی ماسواله دي چې ښځه دخپل خاوند په مرگ څلورمياشتې اولس ورځې ماتم وکړي ،همدارازمروی ده چې نبی کريم ﷺ معتدي لره په حناسره له خضاب کولو منع فرمايلې ده ،داروايت مطلق دی متوفی عنها زوجها او معتده بائنه دواړوته شامل دی،او عقلی وجه داده چې د نعمت نکاح د فوت کيدلو په وجه د تأسف لپاره پر دي ماتم کول واجب گرځول شوی دی .

(٢) د ښځې ماتم دادی چې زيب او زينت پريږدي او خوشبوئي لگول ،رانجه لگول ،تيل لگول خواه که خوشبوداروي ياغيرخوشبودار ټول ترک کړي ولی چې دا شيان په ښځه کې رغبت زياتوي حال داچې داسې ښځه له نکاح څخه منع کړای شوي ده نوله دي شيانو څخه به هم ځان ساتې ترڅو ددي په وجه سره په حرامو اخته نه شي ،البته که کوم عذروونو ددي شيانو استعمال جائزدی اذالضرورات تبيح المحظورات (ولی چې ضرورتونه محظورات مباح گرځوي )،او نکريزي دي نه لگوي او په عصفر يا زعفران سره رنگ شوي جامه دي نه په تن کوي ولی چې دا شيان هم رغبت زياتوي کمامر.

### دماتم کولو ناجائزي طريقي

**ف**: دمغربی تهذيب د تقليد او له هغه څخه دمرعوبيت په نتيجه کې په مسلمانانو کې هم دماتم ځينې داسې طريقې رواج شوي دي کومې چې غيراسلامې دي مثلاً دلږوخت لپاره خاموش پاتې کيدل ، بيرغونه کښته کول ،توري پټيانې تړل ،دماتم ساز غږول ،داظهارغم داټولې طريقې ناجائزدي ،په فطري ډول چې کومې اوښکې په خپله راوځي (يعنی کومه ژړا چې په طبعی ډول کيږي)صرف دهغه اجازت دی. (جديدفقهی مسائل:١/٤٤٢)

(٣) ليکن دماتم کولو لپاره شرط دادی چې ښځه به بالغه وي پرنابالغه ماتم واجب نه دی ولی چې له نابالغې څخه خطاب شرع موضوع دی يعنی هغه په خطاب الهی کې داخله نه ده ،همداشان داهم شرط دی چې ښځه به مسلمانه وي که څه هم مينځه وي ولی چې پرکافري ښځې ماتم نشته ځکه چې داماتم شرعی حق

دی او هغه په شرعی حقوقو سره مخاطبه نه ده . دائمه ثلاثه په نزد پرنابالغه او کافره باندي ماتم واجب دی ولی چي دماتم په باره کي نصوص مطلق دي ،اوپرمینځه دماتم دوجوب وجه داده چي مینځه په هغوتولو شرعی حقوقو مخاطبه وي په کوموکي چي ددي دمولیحق نه باطلیږي او ماتم کول همداشان ده چي په ده سره دمولی حق نه باطلیږي ،دکنزپه ځینو نسخو کي دالفظ ولوامة نشته .

(۴)قوله لامعتدة العتق ای لایحد معتدة العتق ،یعنی که مولی ام ولدازاده کړه یامولی مړشونوپه ام ولد ددي په عدت کي ماتم واجب نه دی ،همداشان دنکاح فاسدي په عدت کي ماتم نشته ولی چي ماتم خود نعمت نکاح دزائل والی په وجه سره واجبیږي حال داچي په دي ښځوکي دیوي هم نعمت نکاح نه دی زائل شوی ،اودزینت په باره کي اصل اباحت دی خاص کرد ښځو دپاره قال الله تعالی (من حرم زینة الله التی اخرج لعباده).

(۵)وَلَاتُخطَبُ مُعْتَدَّةٌ ,(۶)وَصَحَّ التَّعْرِيضُ (۷)وَلَاتَخْرُجُ مُعْتَدَّةُ الطَّلَاقِ مِن بَيْتِهَا (۸)وَمُعْتَدَّةُ الْمَوْتِ تَخْرُجُ الْيَوْمَ وَبَعْضَ اللَّيْلِ (۹)وَتَعْتَدَّانِ فِي بَيْتٍ وَجَبَتْ فِيهِ (۱۰)إِلَّاأَنْ تُخْرَجَ اَوْيَنْهَدِمَ

**ترجمه** :اودنکاح پیغام دي نه ورکول کیږي معتدي ته ،اوتعریض صحیح دی ،اونه دي وځي معتده دطلاق له خپل کورڅخه ،اومعتده مرگ په ورځ کي وتلی شي اودشپي په بعض حصه کي ،اودادواړه دي په هغه کورکي عدت تیروي په کوم کي چي عدت واجب شوی دی ،مگرداچي راویستل شي یاکورړنگ شي .

**تشریح** :(۵)معتده ښځي ته دنکاح پیغام ورکول صحیح نه دی بلکه حرام دی لقوله تعالی ﴿وَلَكِن لَّا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلَّا أَن تَقُولُوا قَوْلًا مَّعْرُوفًا﴾ (یعنی تاسي له دوئ سره په پټه وعدي مه کوئ مگرداچي معروفه خبره وکړي).

(۶)البته تعریض(تعریض داده چي یوشئ ذکرکړي اومرادبل شئ وي )اجازت دی مثلاداسي ویل چي زه دنکاح اراده لرم یاداسي ووایي چي زه ستاطرف ته راغب یم یاکاش زماکوښځه وای ستاپه شان ،دجوازتعریض دلیل دباری تعالی داارشاددی ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُم بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ﴾ (یعنی پرتاسي گناه نشته په دي امرکي کوم چي تاسي دښځوله کوزدي دتعریض په ډول سره ووایاست)، باید یادوساتل شي چي تعریض له متوفی عنهازوجهاپوري خاص دی مطلقه معتده ته تریض جائزنه دی.

(۷)کومي ازادي ښځي ته طلاق بائن یارجعی ورکړل شوی وي هغې لره په شپه یاورځ کي له خپل کورڅخه وتل جائزنه دي لقوله تعالی ﴿واتقوا الله ربكم لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِن بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَن يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ﴾ (یعنی تاسي له الله تعالی څخه ویریږئ کوم چي ستاسي رب دی دابښځي ددوئ له کورنوڅخه مه باسئ اونه دي هغه ښځي په خپله وځي مگرهوکه کومه یوه ښکاره بي حیائي وکړي نوداپیله خبره ده )همداراز دداسي ښځي نفقه ددي پرخاوند واجب ده لهذا دمنکوحه غیرمطلقه په شان دي لره له کورڅخه دوتلو حاجت نشته .

(۸)دمتوفی عنهازوجهالپاره تولہ ورځ اودشپي په څه حصه کي له کورڅخه دباهرپاتي کیدلو شرعاً اجازت شته ځکه چي ددي نفقه پرهیچاواجب نه ده لهذادروزي دتلاش لپاره وتلوته محتاجه ده اوکله په کارکولو کي شپه راځي اودڅه حصه دشپي هم تیریږي په دي وجه دشپي څه حصه په باهرکي دپاتي کیدلواجازت ورکړل شوی دی ،هوکه له دي سره بقدرکفایت روزی وي نوبیادمطلقه په شان دي لره هم له کورڅخه وتل جائزنه دي ،مگرشپه به دواړه (معتدة الطلاق اومعتدة الموت )په هرحال په خپل هغه کورکي تیروي په کوم کي چي عدت واجب شوی دی ولی چي دشپي باهرتیرولو حاجت نشته .

(۸)په معتده ښځه واجب ده چې دوقوع فرقت اووفات زوج په وخت عدت په هغه مکان کې تيرکړي کوم مکان چې ددې طرف ته په اوسيدنه سره منسوب کيږي ،حتی که دادخپل اوسيدنې له مکان څخه ماسوا په کوم بل مکان کې وه چې خاوند طلاق ورکړنوفورا به خپل کورته واپس راځي.

(۱۰)که دوفات شوی خاوند په مکان کې دښځې حصه دتنګې په وجه دومره وي چې داپه هغه کې نه شې اوسيدلی اونوروارثان هم داله خپلې حصې څخه وباسې ياپه کوم کورکې چې عدت واجب شوی دی هغه کوررنګ شي نوپه دې صورت کې دابنځه بل مکان ته منتقل کيدلی شي ولی چې داانتقال دعذرپه وجه دی اوپه عباداتوکې اعذارمؤثروي.

(۱۱)بَانَتْ اَوْمَاتَ عَنْهَا فِي سَفَرٍ وَبَيْنَهَا وَبَيْنَ مِصْرِهَا اَقَلُّ مِنْ ثَلَاثَةِ اَيَّامٍ رَجَعَتْ اِلَيْهِ(۱۲)وَلَوْثَلَاثَةً رَجَعَتْ اَوْمَضَتْ مَعَهَا وَلِيٌّ اَوْلَا(۱۳)وَلَوْفِي مِصْرٍ تَعْتَدُّ ثُمَّ تَخْرُجُ بِمَحْرَمٍ

**ترجمه** :ښځه بائنه شوه يادې خاوندوفات شوپه سفرکې اودښځې اوددې دښارترمنځ له دريو ورځو څخه کمه فاصله وي نودخپل ښارطرف ته دې راوګرځي ،اوکه ددريوورځوفاصله وي نوواپس دې شي يادې دمقصدطرف ته ولاړه شي خواه که له دې سره ولی وي اوکه ولی نه وي ،اوکه داپه ښارکې وي نوهلته دې عدت تيرکړي بيادې له محرم سره ووځي.

**تشريح** :(۱۱)که کومې ښځې ته دسفرپه حال کې خاوندبائن طلاق ورکړيادسفرپه حال کې ددې خاوندوفات شواوحال داچې ددې ښځې اوددې ښارپه منځ کې له دريوورځوڅخه لږفاصله وي نودابنځه دې خپل ښارته راوګرځي ولی چې په واپس راګرځيدلوسره دامقيمه ګرځي حال داچې دسفردجاري ساتلوپه حالت کې دامسافره کيږي .پاتې شوترخپل ښارپورې په راتګ کې چې کوم سفردی هغه ابتدائې نه دی بلکه پرسابقه سفربناءدی لهذاداجائزدی.

(۱۲)قوله ولوثلاثة رجعت اومضت ای لوکان بينهماوبين مصرثلاثة ايام فلهاالخياران شاءت رجعت وان شاءت مضت ، يعنی که ددې اوددې دښارپه منځ کې درې ورځې فاصله وي نواوس دې لره اختياردی که يې خوښه وي نوخپل ښارته دې راوګرځي اوکه يې خوښه وي نوچيرته چې يې اراده وي هلته دې ولاړه شي خواه که کوم ولی ورسره وي يانه وي ولی چې په دغه ځای کې اوسيدل چيرته چې خاوندوفات شوی وي دښځې په حق کې له خطرڅخه خالي نه دی لهذاخپل کورته دې واپس شي يادې منزل مقصودته ولاړه شي ، مګرکورته راګرځيدل اولی دي ترڅوعدت دخاوندپه کورکې تيرشي .

(۱۳)اوکه ښځه په کوم ښاريا کلي کې وي چې ددې خاوندوفات شواودې لره په دې ښاريا کلي کې داوسيدلوقدرت هم وي نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدبه دابنځه له دې ښارڅخه نه ووځي ترڅوچې خپل عدت پوره کړي .بياله عدت پوره کيدلوڅخه وروسته که له دې سره کوم محرم وي نوخپل کورته تللی شي ،دصاحبينوپه نزدکه له دې ښځې سره کوم محرم وي نوله عدت پوره کولوڅخه وړاندې هم له دې ځايه وتلی شي ولی چې محرم ورسره دی اودسفرپه حالت کې دتکليف اوتنهائې دوحشت عذردی اودعذرپه وجه سره له مکان عدت څخه وتلی شي ،دمدت سفرپه وجه بې شکه له وتلوڅخه ممانعت دی مګردمحرم دوجودپه وجه سره هغه هم پاتې نه شو.دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې په عدت کې وتل بغيرله محرم څخه

ترسفرکولوزیات ممنوع دی همداوجه ده چې ښځه له مدت سفرڅخه کم بغیرله محرمه سفرکولی شي مګرمعتده لره داجائزنه ده ،نوکله چې ښځې لره بغیرله محرم ترمدت سفرپوري په سفروتل حرام دي نوپه عدت کې ددي سفرکول به په طریقه اولی سره حرام وي.

ف: دامام صاحب قول راجح دی لماقال المفتی غلام قادر النعمانی: القول الراجح هو قول ابی حنیفه ... وفی الهندیة وان کان معهامحرم لم تخرج عندابی حنیفه وقالاتخرج وهو قول ابی حنیفه اولا وقوله الاخر اظهر ... وقال استاذنا المفتی غلام قادر النعمانی: والانسب ان یفتی بقول الصاحبین وذالک لفسادالزمان لان العدة فی السفر بغیر محرم لاتخلو عن مفسدة (القول الراجح: ۱/۳۷۳)

## بَابُ ثُبُوتِ النَّسَبِ

### داباب دثبوت نسب په بیان کې دی

مصنف رحمه الله له دي څخه وړاندي دمعتده انواع (ذوات الحیض ،ذوات الاشهر ،اوذوات الاحمال) بیان کړي ثبوت نسب په دي دریوانو اعوکې ددریمې نوع اثردی او اثرله مؤثر څخه وروسته وي په دي وجه په دي باب کې ددي اثرمختلف صورتونه بیانوي چې په کوموصورتونوکې نسب ثابتیږي اوپه کوموکې نه ثابتیږي.

(۱) ومن قال إن نكحتها فهي طالق فولدت لستة أشهر منذ نكحها لزمه نسبه ومهرها (۲) ويثبت نسب ولد معتدة الرجعي وإن ولدته لأكثر من سنتين ما لم تقر بمضي العدة (۳) فكان رجعة في الأكثر منهما لا في الأقل منهما (۴) والبت لأقل منهما (۵) وإلا لا (۶) إلا أن يدعيه.

**ترجمه**: چاوویل چې که زه له فلانکۍ ښځې سره نکاح وکړم نوهغه طلاقه ده بیاله شپږمیاشتو وروسته دهغې ماشوم پیداشوله کوم وخت څخه چې له دي سره نکاح کړي ده نولازمیږي نسب او دښځې مهر ،او ثابتیږي دمعتده رجعی دماشوم نسب که هغه ماشوم پیداشوله دوه کاله وروسته ترڅوچې دي اقرارنه وي کړي دعدت دتیریدلو ،اورجوع به شمارل کیږي له دووکالوڅخه په زیات کې نه له دووکالوڅخه په لږکې ،اودبائنه که له دووکالوڅخه په لږکې وو ،که نه نو ،مګرداچې خاوند دهغه دعوی وکړي.

**تشریح**: (۱) که چاوویل ،ان نکحت فلانة فهی طالق (که زه له فلانکۍ ښځې سره نکاح وکړم نوهغه طلاقه ده) بیاده له هغې ښځې سره نکاح وکړه اوله نکاح څخه پوره شپږمیاشتې وروسته ددي ښځې ماشوم وزیږیدونوددي ماشوم نسب به له دي کس څخه ثابتیږي ولی چې دابنځه دده فراش ده اودنبی کریم ﷺ ارشاددی چې الولدللفراش (ماشوم دصاحب فراش وي). اوپردي کس ښځې لره کامل مهرلازم دی ولی چې په ثبوت نسب سره ددي طلاق بعدالدخول ثابت شواوپه طلاق بعدالدخول کې پوره مهرلازمیږي.

(۲) مطلقه رجعیه که دطلاق له وخت څخه په دوه کاله یاله دووکلونوڅخه په زیاته مده کې ماشوم وزیږاوونوله خاوندڅخه به ددي ماشوم نسب ثابتیږي په دي شرط چې ښځې له دي څخه وړاندي دعدت دپوره کیدلواقرارنه وي کړی (که نه نو له شپږمیاشتوڅخه په زیاته مده کې دزیږیدونکی ماشوم نسب نه ثابتیږي) ولی کیدای شي چې دابنځه دي ممتدة الطهروي اودطهرداوږدوالی په وجه دي ددي عدت اوږدشوی وي اوخاونددي دعدت په زمانه کې وطی کړي وي ولی چې له معتده رجعیه سره وطی کول جائزده نوپه دي وطی سره رجعت هم ثابتیږي اودماشوم نسب هم ثابتیږي ولی چې له دي ښځې سره وطی

بعد الطلاق شوي ده ځکه چې دحمل اکثره مده دوه کاله ده او ظاهر حال دادی چې داوطی دي کس کړي ده ولی چې له مسلم څخه زنا منتفی ده .

(۳) قوله وكالت رجعة لی اكثر منهما ای كالت الولادة رجعة عليها اذا كان الميلاد لی اكثر من السنتين ،یعنی دمعتده رجعیه له دوو کلونو څخه په زیاته مده کې د ماشوم زیږید نه رجوع شمارل کیږي ولی چې علوق له طلاق څخه وروسته شوی دی او د مسلمان خاوند له شان څخه دا ظاهره ده چې ده دعدت په دوران کې له معتده سره وطی کړي ده کومه چې ده لره جائزده لهذا په دي وجه دی رجوع کونکی شمارل کیږي ،او که له دوه کاله څخه په کمه مده کې ماشوم وزیږید نو دا وطی رجوع نه شمارل کیږي ځکه چې که دا احتمال شته چې وطی دي وروسته له طلاق څخه شوي وي نو دا احتمال هم شته چې له طلاق څخه وړاندي دي شوي وي نو په رجعت کې شک پیدا شو او په شک سره رجعت نه ثابتیږي .

(۴) قوله والبت لاقل منهما ای يثبت ولد معتدة الطلاق البت اذا ولدت لاقل منهما ،یعنی کومې ښځې ته چې طلاق بائن ورکړل شوی وي پیا دي دفرقت له وخت څخه تر دوو کلونو په کمه مده کې ماشوم وزیږاوو نو ددي ماشوم نسب به دمطلقه له خاوند څخه ثابتیږي ولی چې دا احتمال موجود دی چې دطلاق پروخت دماشوم نطفې قرارموندلی دی نو ددي امر یقین نشته چې دنطفې له قرارموندلو څخه وړاندي دښځې فراش والی زائل شوي دي لهذا احتیاطا نسب ثابتیږي .

(۵) قوله والالا ای ان لم تات به لاقل من سنتين بل اتت به بسنتين او اكثر لايثبت نسبه ،یعنی که دفرقت له وخت څخه وروسته پوره دوه کاله یا له دوو کلونو څخه بعد ماشوم وزیږید نو نسب نه ثابتیږي ولی چې په دي صورت کې بالیقین له طلاق څخه وروسته پیدا شوی دی ځکه چې که له طلاق څخه وړاندي حدوث حمل تسلیم کړای شي نو دحمل مده به له دوو کلونو څخه زیاته شي حال دا چې حمل په نس کې له دوو کلونو څخه زیات نه شي پاتې کیدلی نو کله چې حمل له طلاق څخه وروسته اخیستل شوی دی او له معتده بائنه سره وطی حرامه ده نو دا ددي خبري دلیل دی چې دا حمل ددي کس له نطفې څخه نه دی لهذا نسب نه ثابتیږي .

(۶) البته که خاوند دعوی وکړه چې ماشوم زما له نطفې څخه دی نو د ماشوم نسب له ده څخه ثابتیږي ولی چې ده په خپله ددي ماشوم نسب پر خپل ځان لازم کړی دی او ددي شرعي توجیه هم کیدای شي چې دي کس دعدت په زمانه کې دا خپله بله ښځه ګڼلې وي او له دي معتدي بائنه سره دي وطی کړي وي او څرنګه چې په ثبوت نسب کې احتیاط کیږي لهذا د ماشوم نسب ثابتیږي .

(۷) وَالْمُرَاهِقَةِ لِأَقَلَّ مِنْ تِسْعَةِ أَشْهُرٍ، وَإِلَّا لَا (۸) وَالْمَوْتِ لِأَقَلَّ مِنْهُمَا (۹) وَالْمُقِرَّةِ بِمُضِيِّهَا لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ وَقْتِ الْإِقْرَارِ (۱۰) وَإِلَّا لَا (۱۱) وَالْمُعْتَدَّةُ إِنْ جَحَدَتْ وِلَادَتَهَا بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ أَوْ حَبَلٍ ظَاهِرٍ أَوْ إِقْرَارٍ بِهِ أَوْ تَصْدِيقِ الْوَرَثَةِ (۱۲) وَالْمَنْكُوحَةِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ فَصَاعِدًا، وَإِنْ سَكَتَ (۱۳) وَإِنْ جَحَدَ فَبِشَهَادَةِ امْرَأَةٍ عَلَى الْوِلَادَةِ

**ترجمه** ،او ثابتیږي دمراهقې دماشوم نسب له نه میاشتو څخه په لږ مده کې ،که نه نو نه ثابتیږي ،او ثابتیږي دمعتده مرګ دماشوم نسب له دوو کلونو څخه په لږ مده کې ،او ثابتیږي دعدت دتیریدلو دا قرار کونکې دماشوم نسب له شپږمیاشتو څخه په لږمده کې دا قرار له وخت څخه ،که نه نو نه ثابتیږي ،او که انکار وکړل شو دمعتدي دماشوم له زیږیدلو څخه نو ثابتیږي نسب ددوو نارینه ویا یوه نارینه او دوو ښځو په شهادت سره

يا به حمل ظاهرياد هغه په اقرار يا د ورثه وپه تصديق سره، او ثابتيږي دمنكوحه د ماشوم نسب په شپږمياشتې يا له دي څخه په زيات وخت کې كه خاوند خاموش وي ،او كه خاوند انكار وكړي نو ديوې ښځې په شهادت سره پر ولادت باندي .

**تشريح** :(۷)قوله والمراهقة اى يثبت نسب ولدالمرأة المطلقة المراهقة الخ ،يعنى كه كومه مراهقه (قريب البلوغ انجلى)دطلاق عدت تيروي اوله نه مياشتوڅخه په لږمده کې ددي ماشوم وزيږيدونودطرفينوپه نزدداماشوم له دي خاوندڅخه دى اوكه له نهه مياشتې څخه په زياته مده کې ماشوم وزيږيدنو داماشوم له دي خاوندڅخه نه دى ولى چې كومه ښځه له ذوات الحيض څخه نه وي دهغې عدت دري مياشتې دى نو دري مياشتو په تيريدلو سره شريعت ددي دعدت دپوره كيدلو حكم وركوي خواه كه دا ښځه دعدت دپوره كيدلو اقرار وكړي اوكه يې ونه كړي اودعدت په پوره كيدلو په دلالت كولو کې دشريعت حكم دښځې له اقرارڅخه لوړدى نوكه ښځه دعدت دپوره كيدلو اقرار كوي اوله دي څخه وروسته پرشپږ مياشتې ماشوم زيږيدونو نسب به نه ثابتيدونو دشريعت له طرفه دعدت دپوره كيدلو دحكم وركولو په صورت کې په طريقه اولى سره نسب نه ثابتيږي په دي وجه كه مراهقه دطلاق له وخت څخه په نهه مياشتې ماشوم زيږوي نو ددي ماشوم نسب نه ثابتيږي .دامام ابويوسف رحمه الله په نزددطلاق له وخت څخه تردوو كلونو پوري نسب ثابتيږي .دامام ابويوسف رحمه الله دليل دادى چې څرنګه چې له مطلقه رجعيه سره دعدت په زمانه کې وطى كول جائزده په دي وجه ممكنه ده چې دعدت په اخيري وخت کې دوطى شوي وي اويادي په اكثرمدت حمل کې دماشوم ولادت شوى وي لهذاكه دطلاق له وخت څخه تراوويشت مياشتې پوري ماشوم وزيږيدونو دهغه نسب ثابتيږي .

ف :دطرفينو قول راجح دى لماقال المفتى غلام قادر النعمانى :القول الراجح هوقول الطرفين ...وقال العلامة ابن عابدين :قوله والالاای وان لم يكن لاقل بل ولدت لتسعة اشهر فاكثر فانه لايثبت نسبه لانه حمل حادث بعدالعدة (القول الراجح: ۱/۳۷۳)

(۸)قوله والموت لاقل منهمااى يثبت نسب ولدالمعتدة الموت الخ ،يعنى دكومې ښځې چې خاوند وفات شونو ددي ماشوم نسب ددي دخاوندله وفات څخه تردوه كاله په دننه کې ثابتيږي كه څه هم غيرمدخول بهاوه په دي شرط چې دي دعدت دپوره كيدلو اقرارنه وي كړى ولى چې ماشوم تردوه كلونو پوري په نس کې پاتې كيدلى شي اوپه ثبوت نسب کې احتياط كيږي نوكله چې دي دعدت دپوره كيدلو اقرارنه دى كړى نو دابه دمرګ له وخت څخه حامله شمارل كيږي اوددي عدت په مياشتونه دي تيرشوى لهذاتردوو كلونو پوري نسب ثابتيږي .دامام زفر رحمه الله په نزددمرګ دعدت له تيريدلو څخه وروسته دشپږومياشتو په تيريدلو سره كه ماشوم وزيږيدنونسب نه ثابتيږي ولى چې دمرګ له عدت څخه وروسته ماشوم زيږيدلى دى لهذادايقينى نه ده چې دادعدت په دوران کې حامله وه نودنسب په ثبوت کې شک دى ځكه نه ثابتيږي .

(۹)قوله والمقرة اى يثبت نسب ولدالمقرة بمضى العدة لاقل من ستة اشهر ،يعنى كه كومې معتدي اقراروكړچې زماعدت تيرشويادا سې وشوچې ددي داقرارله وخت دشپږومياشتوترپوره كيدلووړاندي دي ماشوم وزيږاوونوددي ماشوم نسب ثابتيږي ولى چې له شپږومياشتوڅخه په لږه مده کې دماشوم په زيږيدلو سره

ځرګنده شوه چې داقرارپروخت داحامله وه اوځرنګه چې دحاملې عدت وضع حمل دی ځکه نودا دانقضاء عدت په اقرارکې دروا غجنه ده لهذا ددې مخکنی اقرارباطل دی په دې وجه دماشوم نسب ثابتيږي.

(۱۰)قوله والالای ان لم تلدلستة اشهرمن وقت الاقراربل ولدت لاكثرلايثبت نسبه منه ،یعنی که دعدت له پوره کيدلووروسته داقرارله وخت ځخه په پوره شپږمیاشتې ماشوم وزیږیدنونسب نه ثابتيږي ځکه چې په اقرارسره معلوميږي چې حمل وروسته له اقرارځخه اخيستل شوی دی ولی چې ښځه په خبرورکولوکې امينه ده اوقول دامين معتبروي ترځوچې دده كذب متحقق نه شي.

(۱۱)قوله والمعتده ان جحدت الخ ای يثبت نسب ولدالمعتدة بالشهادة الكاملة ان جحدالزوج والورثة ولادتها،یعنی که دمعتدې ښځې ماشوم وزيږيدا وخاوندله ولادت ځخه انکاروکړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدنسب هغه وخت ثابتيږي کله چې دماشوم پرولادت دوه نارينه یایونارينه اودوه ښځې شاهدې ورکړي ،یاداچې حمل له وړاندې ځخه ښکاره وي ،یاخاونددحمل اعتراف وکړي یاورثه تصدیق وکړي نوپه دې صورتونوکې نسب ثابتيږي.

دصاحبينورحمهماالله تعالى په نزدپه مذکوره ټولوصورتونوکې ديوې ښځې په ګواهی سره نسب ثابتيږي. دصاحبينو دليل دادی چې دعدت دقيام په وجه ښځه دخپل خاوندفراش (وهوتعيين المرأة لماء الزوج بحيث يثبت منه نسب كل ولدتلده) اوفراش والی نسب لازموي لهذادنسب دثابتولوهيڅ ضرورت نشته هوددې خبرې ضرورت شته چې واقعی داماشوم له دې ښځې زیږیدلی دی اوکه نه دی نوداخبره ديوې ښځې په ګواهی سره ثابتيږي.

دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې ښځه ځرنګه چې عدت تيروي ځکه نودادخاوندمکمل فراش نه دی لهذافراش دناقص والی په وجه سره دثبوت نسب لپاره کافي نه دی نودثبوت نسب لپاره دکامل ګواهی ضرورت دی اوکامله ګواهی داده چې دوه نارينه ګواهی ورکړي یایونارينه اودوه ښځې ګواهی ورکړي البته که حمل ښکاره وویاخاوندګواهی ورکړي نوپه دې صورتونوکې قبل الولادت نسب ثابت دی .اوکه ورثه تصدیق وکړي نوهم دشهادت ضرورت نشته ولی چې ورثه دخاوند(میت ) قائم مقام دي لهذادخاوندپه شان ددوئ په تصدیق سره هم نسب ثابتيږي.

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافي الدرالمختار:(و)يثبت نسب ولد(المعتدة)بموت اوطلاق(ان جحدت ولادتهابحجة تامة)واكتفيابالقابلة وقيل برجل،قال العلامة ابن عابدين(قوله وقيل برجل)ای علی قولهماوعبرعنه بقيل تبعاللفتح وغيره اشارالی ضعفه(الدرالمختارمع الشامية:۲/۱۸۰)

(۱۲)قوله والمنكوحة لستة اشهرفصاعداان سكت ای ويثبت نسب المنكوحة لستة اشهرفصاعداان سكت ،یعنی که چاله کومې ښځې سره نکاح وکړه بیادنکاح له وخت ځخه په شپږمیاشتې یازائدکې ماشوم وزيږيد نو ددې ماشوم نسب به له دې خاوند ځخه ثابتيږي خواکه خاونداقراروکړي یاخاموش پاتې شي ولی چې دښځې فراش والی هم ثابت دی اودحمل مدت هم پوره دی.اوکه دنکاح له وخت ځخه ترشپږومیاشتوپه کم کې ددې ښځې ماشوم وزيږيدنودې ماشوم نسب به له دې خاوند ځخه ثابت نه وي ولی چې دحمل لږترلږه مده شپږمیاشتې

ده اوماشوم له شپږمیاشتې څخه په لږمده کې وزیږیدنومعلومه شوه چې نطفې له نکاح څخه وړاندې قرارنیولی دی نوثابته شوه چې دانطفه له دې خاوند څخه نه ده نونسب هم له ده څخه نه ثابتیږي .

(۱۳)که ماشوم په شپږمیاشتې یاله دې څخه په زیات وخت کې وزیږیدمګرخاونددماشوم له زیږیدنې څخه انکاروکړ وديوې ښځې (کومه چې پرولادت ګواهي ورکړي )په ګواهي سره ولادت ثابتیږي ولی چې نسب خودفراش په وجه ثابت دی حاجت تعین ولدلره دی نوهغه دیوې ښځې په ګواهي سره متعین کیږي کمامر.

(۱۴)فَإِنْ وَلَدَتْ ثُمَّ اخْتَلَفَا فَقَالَتْ نَكَحْتَنِي مُنْذُ سِتَّةِ أَشْهُرٍ ، وَادَّعَى الْأَقَلَّ فَالْقَوْلُ لَهَا وَهُوَ ابْنُهُ ) (۱۵ ) وَلَوْ عَلَّقَ طَلَاقَهَا بِوِلَادَتِهَا وَشَهِدَتْ امْرَأَةٌ عَلَى الْوِلَادَةِ لَمْ تَطْلُقْ (۱۶ ) وَإِنْ كَانَ أَقَرَّ بِالْحَبَلِ طَلُقَتْ بِلَا شَهَادَةٍ (۱۷ ) وَأَكْثَرُ مُدَّةِ الْحَمْلِ سَنَتَانِ (۱۸ ) وَأَقَلُّهَا سِتَّةُ أَشْهُرٍ

**ترجمه** :اوکه دښځې ماشوم وزیږید وبیادواړواختلاف وکړښځې وویل چې ده له ماسره نکاح کړې له شپږمیاشتوڅخه اوخاونددلږوخت دعوی کوي نوقول به دښځې معتبروي اوماشوم به دخاوندبچی وي،اوکه یې معلق کړدښځې طلاق دماشوم په زیږیدلوپوري اویوې ښځې دولادت ګواهي ورکړه نوطلاق نه واقع کیږي ،اوکه خاونددحمل اقرار وکړنوطلاقیږي بلاشهادته ،اودحمل اکثرمدت دوه کاله دی اولږمدت یې شپږمیاشتې دی .

**تشریح** :(۱۴)که دښځې ماشوم وزیږیدبیاپه زوجینوسره اختلاف شوښځه وایې چې ستاله ماسره دنکاح کولوشپږ میاشتې تیري شوي دي لهذاداماشوم له تاڅخه دی له زناڅخه نه دی اوخاوندوایې چې دنکاح له وخت څخه تراوسه پوري شپږمیاشتې نه دي پوره شوي لهذاداماشوم زماله نطفې څخه نه دی نوپه دې صورت کې دښځې قول معتبردی اودماشوم نسب له دې کس څخه ثابتیږي ولی چې ظاهرحال ښځې لره شاهددی ولی چې ظاهره داده چې داماشوم له نکاح څخه زیږیدلی وي نه له زناڅخه .

(۱۵)که چاخپلې ښځې طلاق دماشوم په زیږدلوپوري معلق کړمثلاوي ویل که ستاماشوم وزیږیدونوته طلاقه یې .اوس یوې ښځې ګواهي ورکړه چې ددې ماشوم وزیږیدنودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدپردې ښځې طلاق نه واقع کیږي ولی چې داپه خپله ګواهي سره ددې کس حانث والی ثابتوي کوم چې له حجة تامه څخه بغیرنه ثابتیږي حال داچې دیوې ښځې ګواهي حجة تامه نه دی .اودصاحبینوپه نزدطلاق واقع کیږي .دصاحبینودلیل دادی چې په کوموشیانوچې نارینه نه شي خبریدلی دهغوپه باره کې دښځې ګواهي معتبرده اوولادت له همدې اموروڅخه دی .

(۱۶)اوکه په مذکوره بالاصورت کې خاونددې دحمل اقراروکړنودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددیوې ښځې په صرف بیان ولادت سره طلاق واقع کیږي دګواهي ورکولوضرورت نشته ولی چې اقراربالحمل په هغه شئ هم اقراردی دکوم طرف ته چې حمل مفضی دی یعنی دولات .نودخاوندپه اقرارسره ولادت ثابت دی ددایه دګواهي ضرورت نشته .حال داچې دصاحبینوپه نزدددایه ګواهي ضروري ده ولی چې دایه ددې کس دحانث والی دعوی کوي کوم چې بغیرله حجته نه ثابتیږي اوپه داسې مواقعوکې ددایه ګواهي معتبره ده .

(۱۷) دحمل اکثرمدت دوه کاله دی ولی چې دحضرت عائشه ﷞ قول دی چې ماشوم په نس کې له دوه کاله ځخه زيات نه شي پاتې کيدلی اګر دومره وخت وي ځومره وخت چې دڅرخی دڅرخيدلو په وخت سايه تم کيږي .ظاهره ده چې داخبره په قياس سره نه شي معلوميدای لهذا همدا به ويل کيږي چې حضرت عائشه ﷞ له نبی کريم ﷺ ځخه اوريدلی ده ،دامام شافعی ﷫ په نزدد حمل اکثرمدت ځلورکاله دی هغه په حکاياتوسره استدلال کوي لکه چې مروی ده چې ضحاک دخپلې مورپه نس کې ترځلوروکالوپاتې ووبيادزيږيدلوپه وخت کې دده غاښونه راوښنه شوي وواوخندل يې ځکه يې دده نوم ضحاک کښيښود .

(۱۸) اودحمل لږترلږه مده بالاتفاق شپږمياشتې ده لقوله تعالى ﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا﴾ (يعنی دماشوم په حمل کې پاتې کيدل اودی له شيدوپريکول ديرش مياشتې دي )اوبيايې فرمايلې دي وفصاله فی عامين چې فصال په دوه کاله کې کيږي نودحمل لپاره شپږمياشتې پاتې شوي .

(۱۹) فَلَوْ نَكَحَ أَمَةً فَطَلَّقَهَا فَاشْتَرَاهَا فَوَلَدَتْ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْهُ لَزِمَهُ، وَإِلَّا لَا (۲۰) وَمَنْ قَالَ لِأَمَتِهِ إِنْ كَانَ فِي بَطْنِكِ وَلَدٌ فَهُوَ مِنِّي فَشَهِدَتْ امْرَأَةٌ بِالْوِلَادَةِ فَهِيَ أُمُّ وَلَدِهِ (۲۱) وَمَنْ قَالَ لِغُلَامٍ هُوَ ابْنِي، وَمَاتَ فَقَالَتْ أُمُّهُ أَنَا امْرَأَتُهُ، وَهُوَ ابْنُهُ مِنِّي يَرِثَانِهِ (۲۲) فَإِنْ جُهِلَتْ حُرِّيَّتُهَا فَقَالَ وَارِثُهُ أَنْتِ أُمُّ وَلَدٍ أَبِي فَلَا مِيرَاثَ لَهَا

**ترجمه** :نوکه چانکاح وکړه له مينځې سره بيايې دي ته طلاق ورکړاووايې خيستله بيادهغې ماشوم وزيږيدوله شپږومياشتوپه کم وخت کې نوهغه ده لره لازم دی ،اوچاکه خپلې مينځې ته وويل که ستاپه نس کې ماشوم وونوهغه له ماڅخه دی بيايوي ښځې ګواهی ورکړه پرولادت نوهغه دده ام ولدګرځې ،اوچاکه دکوم هلک په باره کې وويل هغه زمازوی دی اووفات شوبيادهلک مورووويل چې زه دده ښځه يم اودادده زوی دی نودواړه به دده وارث وي ،بياکه مجهوله شوه ددې ازادي اودميت وارث ووايې ته زمادپلارام ولدېې نوښځې لره ميراث نشته .

**تشريح** :(۱۹)که چادبل له مينځې سره نکاح وکړه بيايې له وطی ځخه وروسته طلاق ورکړبيايې هغه له مالک ځخه واخيسته نوکه داخيستلوله وخت ترشپږمياشتې په کم وخت کې ماشوم وزيږيدنوددې ماشوم نسب به پرده بلادعوی لازم وي ولی چې ماشوم له شپږمياشتې ځخه په لږوخت کې وزيږيدوله کوم ځخه چې معلومه شوه چې دانطفه له اخيستلوځخه وراندې قرارنيولی دی نوثابته شوه چې داماشوم دمُعتدې دی اودمعتدې دماشوم نسب بغيرله دعوی ځخه ثابتيږي.اوکه په شپږمياشتې ياله دې ځخه په زيات وخت کې ماشوم وزيږيدونودنسب له دعوی کولوځخه بغيردماشوم نسب پرده نه لازميږي ولی چې داماشوم دمملوکه مينځې دی ځکه چې داعلوق له اخيستلوځخه وروسته شوي دی اودمملوکه مينځې نسب بغيرله دعوی نه ثابتيږي .

(۲۰)که چاخپلې مينځې ته وويل چې که ستاپه نس کې ماشوم وي نوهغه له ماڅخه دی بيادااقرارله وخت ترشپږمياشتې په لږوخت وکې يوې ښځې دمينځې دماشوم دزيږيدلوګواهی ورکړه نودامينځه دده کس ام ولدګرځې ولی چې دمينځې دماشوم نسب دمولی په دعوی سره ثابتيږي اودادعوی دمولی له طرف ځخه متحققه شوه ولی چې مولی ويلې وو ان کان فی بطنک ولد فهومنی ، باقی دتعيين ولدضرورت دی اوهغه بالاتفاق ددايه په ګواهی سره ثابتيږي .

(۲۱)که کوم کس دکوم هلک په باره کې وویل چې دازمازی دی اوله دي ویناڅخه وروسته وفات شواوس ددي هلک موردعوی وکړه چې زه ددي کس ښځه یم اوداله ماڅخه دده زوی دی نودا ښځه اوددي زوی دواړه به ددي میت وارث وي ولی چې دثبوت نسب لپاره نکاح صحیح متعینه ده لهذا دښځې منکوحه والی ثابت شونوکله چې ده دبنوت اقرار وکړنوماسوم به پرده حمل کیږي ترڅوچې ددي خلاف ظاهرنه وي اوله ماشوم سره به دا ښځه هم وارثه وي.

(۲۲)اوکه دښځې ازادوالی هیچاته معلوم نه وي اودمیت وارث یعنی زوی دي ښځې ته وویل چې ته خوزمادپلارام ولدیې منکوحه نه یې نواوس به دي ته میراث نه ورکول کیږي ولی چې دا ښځه منکوحه نه ده ځکه چې په دارالاسلام کې له اوسیدلوڅخه ماسواددي حریت هیڅ دلیل نشته اوصرف په دارالاسلام کې اوسیدنه ددفع رقیت لپاره خوحجت ده مګر داستحقاق میراث دپاره حجت نه شي کیدای.

## بَابُ الْحَضَانَةِ

### داباب دپالنې په بیان کې دی

حضانت بکسرالحاء وفتح الحاء دحضنا مصدردی په معنی دپالنه کول ،له ماقبل سره یې مناسبت دادی چې دپالنې ضرورت له ثبوت نسب څخه وروسته پیداکیږي لهذا مصنف رحمه الله له ثبوت نسب وروسته دپالنې احکام ذکرفرمایلی دي:

(١) أحق بالولد أمه قبل الفرقة وبعدها (٢) ثم أم الأم (٣) ثم أم الأب ثم الأخت لأب وأم ثم لأم ثم لأب (٣) ثم الخالات كذلك ثم العمات كذلك (٥) ومن نكحت غير محرمه سقط حقها ثم تعود بالفرقة (٦) ثم العصبات بترتيبهم

**ترجمه**:دماشوم ترټولو زیاته حقداره دده مورده له فرقت څخه وړاندي هم اوله فرقت څخه وروسته هم،بیانادده بیاحقیقي خوربیااخیافي خورده بیاعلاتي خورده بیاخالې ګاني دي همداشان بیاعمې دي همداشان ،اوکومه ښځه چې نکاح وکړي دماشوم له غیرمحرم سره نوددي حق ساقطیږي بیادفرقت پروخت بیرته راګرځي .بیاعصبات دي دمیراث په ترتیب سره .

**تشریح**:(۱)دماشوم دپالنې ترټولو زیاته حقداره دده مورده خواه که له فرقت څخه وړاندي وي اوکه له فرقت څخه وروسته وي ،نوکه دزوجینوترمنځ جلاوالی راغی نوبیاهم دماشوم زیاته حقداره دده مورده ولی چې مورترټولو زیاته شفیقه ده اودماشوم په تربیت ښه پوهیږي لهذا دماشوم خپلې مورته سپارل دماشوم په حق کې ډیرښه ده ،البته که مورمرتده شوه (العیاذبالله)یافاسقه فاجره وي نوبیادي لره دحضانت حق نشته .

(۲)که دماشوم مورنه وي نواناپادانامور(وان بعدت )دماشوم زیاته حقداره ده په نسبت دپلار مورته ،وجه یې داده چې دا ولایت دموروانوله طرف څخه ددوئ دشفقت په وجه مستفاددی لهذا کومه ښځه چې مورته ډیره قریبه وي هغه له هغې ښځې څخه ډیره حقداره ده کومه چې دپلارقریبه وي .

(۳)اوکه اناهم نه وه نوبیادپلارموردخوندوپه نسبت زیاته حقدارده ولی چې انا(دپلارمور)په شفقت کې ترخوندوزیاته ده ځکه چې انا(دپلارمور)اصل الولدده یعنی داناا وماشوم په منځ کې دولادت

قرابت دی او اناله امهاتو څخه ده او که انا (دپلار مور) هم نه وه نو بیاترخاله ګانو او عمه ګانو خوندي ډیري حقداره دي ولی چې خوندي دخاله ګانو او عمه ګانو په نسبت ډیري قریبې دي ،بیا په خوندو کې ترټولو زیاتې حقداري حقیقې خوندي (کومې چې په مور او پلار دواړو شریکې وي )دي ولی چې حقیقې خوردوه قرابته لري ،بیا مورشریکه خور ډیره حقداره ده په نسبت دپلار شریکې خورته ولی چې دا حق دمور له جانب څخه دی .

(۴)که خوندي نه وي نو خاله ګانې ډیري حقداره دي په نسبت دعمه ګانو ولی چې دا حق دمور له طرف څخه دی او په خاله ګانو کې دخوندو په څېر تفصیل دی ذات القرابتین مقدم دي ترذات قرابت واحده څخه ،بیا قرابت ام مقدم دی ترقرابت اب څخه ،او که خاله ګانې نه وي نو بیا عمه ګانې حقداري دي او په عمه ګانو کې هم هغه تفصیل دی چې ذات القرابتین مقدم دي له ذات قرابت واحده څخه ،او قرابت واحده کې دام قرابت مقدم دی له قرابت اب څخه .

(۵)په مذکوره بالا ښځو کې چې کومې هم دماشوم له غیرمحرم کس سره نکاح وکړه نو ددي حق دپالنې ساقطیږي ولی چې نبی کریم ﷺ یوي مورته همدا فرمایلي وو چې تاته حق دحضانت حاصل دی ترڅو چې ته نکاح ونه کړي ،همدا شان اجنبی کس دي ماشوم ته حقیرشئ ورکوي او په تندنظر ورته ګوري لهذا په دي کې دماشوم رعایت نشته .هو که دښځې او دهغې ددي خاوندترمنځ فرقت واقع شونو اوس دي لره دوهم ځل حق حضانت حاصلیږي ولی چې اوس مانع پاتې نه شو .نو که ددي ماشوم انا (دمور مور) ددي ماشوم له نیکه (دپلار پلار )سره نکاح وکړه نو حق حضانت نه ساقطیږي ولی چې جد دماشوم دپلار قائم مقام دی ځکه نودده شفقت باقي پاتې کیږي .همدا حال دهر هغه خاوند دی کوم چې ددي ماشوم ذورحم محرم وي ولی چې دقربت قریبه په وجه سره شفقت قائم دی .

(۶)قوله ثم الی العصبات ای بعدهؤلاء المذکورات الاحق بالولد العصبات ،یعنی که دماشوم په خاندان کې دده دپالنې کومه ښځه نه وي بیانارینه وده په پالنه کې اختلاف وکړنو په نارینه وکې دپالنې ترټولو زیات حقدار هغه دی کوم چې په عصبه والی کې دماشوم ډیرقریب وي ولی چې دولایت حق ډیرقرابت لرونکې لره وي او عصبات بترتیب ارث الاقرب فالاقرب ته حق دحضانت حاصل دی نو دماشوم ډیرحقدار پلار بیانیکه بیابرجدالی اخره دی بیاورور بیادهغه اولاد، بیا اعمام بیادهغو اولادونه ،البته ماشومه به عصبة غیرمحرم (لکه مولی عتاقه او ابن العم )ته نه سپارل کیږي تحرزا عن الفتنة.

(۷)وَالْأُمُّ وَالْجَدَّةُ أَحَقُّ بِهِ حَتَّى يَسْتَغْنِيَ، وَقُدِّرَ بِسَبْعِ سِنِينَ (۸) وَبِهَا حَتَّى تَحِيضَ (۹) وَغَيْرُهُمَا أَحَقُّ بِهَا حَتَّى تُشْتَهَى (۱۰) وَلَا حَقَّ لِلْأَمَةِ وَأُمِّ الْوَلَدِ مَا لَمْ يَعْتِقَا (۱۱) وَالذِّمِّيَّةُ أَحَقُّ بِوَلَدِهَا الْمُسْلِمِ مَا لَمْ يَعْقِلْ دِينًا (۱۲) وَلَا خِيَارَ لِلْوَلَدِ (۱۳) وَلَا تُسَافِرُ مُطَلَّقَةٌ بِوَلَدِهَا إلَّا إلَى وَطَنِهَا ,وَقَدْ نَكَحَهَا ثَمَّ

**ترجمه** :او مور او انادماشوم زیاتې حقداراي دي ترڅو چې ماشوم مستغنی کیږي او ددي اندازه په اووکلونو سره لګول شوي ده ،او دماشومې حقداري دي ترڅو چې دي ته حیض ورتلل شروع شي .او له دي دواړو څخه علاوه ښځې حقداري دي ترڅو چې هغه حدشهوت ته ورسیږي ،او دمینځې او ام ولدهیڅ حق نشته ترڅو چې هغه ازادي نه شي ،او ذمیه دخپل مسلمان ماشوم زیاته حقداره ده ترڅو چې هغه په دین نه

پوهیږي ،او ماشوم له هیڅ اختیارنشته ،او مطلقه ښځه به ماشوم په سفرنه بیایي مګرخپل هغه وطن ته په کوم کې چې خاوندله دي سره نکاح کړې ده .

تشریح :(۷)موراو انادماشوم ترهغه وخته پوري حقداره ده چې ماشوم مستغنی شي په دي ډول چې هغه یوائې خورک څښک وکړای شي اویوځې په خپله جامې په تن کړي اویوځې په خپله استنجاء وکړای شي ولی چې کمال استغناء په قدت علی الاستنجاء سره حاصلیږي ددي اندازه په اووکاله سره لګول شوي ده یعنی تراووکلونوپوري به ماشوم دمور او انا په پرورش کې پاتې کیږي .له دي څخه وروسته به ماشوم پلارته سپارل کیږي ولی چې اوس ماشوم دنارینه وااخلاقو او ادابو دزده کولو محتاج دی اودماشوم په مهذب جوړولوباندي پلاربنه قادردی .

(۸)قوله وبهاحتی تحیض ای الام والجدة احق بالجاریة حتی تحیض ،یعنی موراو انادانجلۍ ترهغه وخت پوري حقداري دي ترکله چې دي ته حیض ورځې یعنی بالغه شي ولی چې له بلوغ څخه دي لره دنکاح په ذریعه دمحصنه کولو اوله زنا څخه دمحفوظ کولوضرورت دی اوپلاردمور او انا په نسبت په دي ډیرقدرت لري .له امام محمد رحمه الله څخه یوروایت دادی چې کله حدت شهوت ته ورسیږي نوپلارزیات حقداردی علماؤ په دي زمانه دفسادکې همدا قول مفتی به بللی دی لمافی الدرالمختار:(والام والجدة)لام اولاب (احق بها)بالصغیرة (حتی تحیض )........(وغیرهمااحق بهاحتی تشتهی) ......... (وعن محمدان الحکم فی الام والجدة کذالک )وبه یفتی لکثرة الفساد:(الدارالمختار:علی هامش ردالمحتار:۲/۶۹۵)

(۹)له ام اوجدة څخه ماسونور ي ښځې (کوموته چې حق دپالنې حاصل دی )دانجلۍ دپرورش ترهغه وخت پوري زیاتې حقداري دي ترڅوچې هغه حدشهوت ته ورسیږي چې دهغه اندازه نهه کاله مقرره شوي ده وجه یې داده چې ماشوم که څه هم دښځوداادابودزده کولوته محتاجه ده مګرپه ادب ورزده کولو کې یوقسم خدمت اخیستلوته ضرورت پیدا کیږي اوله مور او انا څخه ماسوانوروته شرعاًخدمت اخیستلوحق نشته نوحدشهوت ته ترړسیدلووروسته له نوروښځوسره پرېښدولوکې مقصودیعنی اداب ورزده کول فوت کیږي . .

(۱۰)له ازادي څخه وراندي مینځې اوام ولدته دماشوم دپالنې هیڅ حق نشته ولی چې دادواړه دمولی په خدمت دمشغول والی په وجه سره دماشوم له پالنې څخه عاجزه دي .همداراز په حضانت کې یوقسم ولایت دی حال داچې دوئ لره په خپلونفسوولایت نشته نوپه غیرخوبه په طریقه اولی سره نه وي ،هوکه مینځه ددي مولی ازاده کړه همداشان کله چې ام ولدازاده کړای شي نودازادوښځوپه څیردوئ دواړه ته هم دماشوم دپالنې حق حاصل دی ولی چې دحق حضانت دثبوت پروخت دوئ دواړه ازادي دي .

(۱۱)که مسلمان کس له کومې ذمیه کتابیه ښځې سره نکاح وکړه بیادذي ماشوم وزیږید نوداماشوم خیر الابوین یعنی مسلمان پلاردتابع کیدلوپه وجه سره مسلمان دی مګردده دپروش زیاته مستحقه دده موردده .لیکن داترهغه پوري ده ترکله چې په ماشوم کې ددین پوهه پیدانه شي اودماشوم له کفرسره دمانوس کیدلو خطره نه وي ولی چې په دي حالت کې دماشوم مورته په سپارلوکې پرده شفقت دی

اوله دي حالت څخه وروسته ضرر دی (يعنى له كفرسره د مانوس کيدلو احتمال دی) ځکه به له ذمیه مور څخه اخیستل کيږي او مسلمان پلار ته به ورکول کيږي.

(۱۲) يعنى ماشوم لره له مور او پلار څخه دخپل پرورش لپاره ديوه دخوښولو اختيار نه دی ولی چې دغیررشید والی په وجه سره د ماشوم په خوښه اعتماد نه شي کیدالی او ماشوم دخپلې کم عقلی په وجه سره هغه اختیار وي کوم چې دی بازی کولو ته ازاد پريږدي ښکاره خبره ده چې په داسې کولو کې پرده هیڅ شفقت نشته. دامام شافعی رحمه الله په نزد ماشوم او ماشومې لره مذکوره بالا اختیار شته ولی چې نبی کریم ﷺ یوه هلک ته دا اختیار ورکړی وو. مگر احناف دنبی کریم ﷺ داعمل له بلوغ څخه په وروسته باندي حمل کوي.

(۱۳) له عدت پوره کیدلو څخه وروسته که مطلقه ښځې وغوښتل چې ماشوم له دي ښار څخه کوم بل ښار ته بوځي نو دي لره دا اختيار نشته ولی چې په دي صورت کې دپلار له خپل زوی څخه دبې خبري په وجه سره دپلار ضرر دی. البته که ښځې دا ماشوم خپل هغه وطن ته بيول غوښتل په کوم کې چې خاوند له دي سره نکاح کړي وه نوښځې لره ددي اختيار شته ولی خاوند چې په کوم ښار کې نکاح کړي ده ده شرعاً او عرفا پر خپل ځان هلته قيام کول لازم کړي وو عرفا ځکه چې خاوند عادة په هغه شهر کې قيام کوي په کوم کې چې نکاح کوي، اوشرعاً ځکه چې دنبی کریم ﷺ ارشاد دی ﴿من تاهل ببلدة فهو منهم﴾ (يعنى څوک چې په کوم ښار کې نکاح وکړي نو هغه هم له هغو څخه دی.

## بَابُ النَّفَقَةِ

دا باب دنفقاتو په بيان کې دی

نفقه په لغة کې هغه څه دی کوم چې انسان پر خپل عيال مصرفوي، اوشرعاً طعام، جامو او سکنی ته ويل کيږي، دنفقې دوجوب دري اسباب دي، زوجيت، قرابت، ملک، بیا زوجیت اصل النسب دی او نسب اقوی من الملک دی ځکه مصنف رحمه الله د زوجيت بيان شروع کړ.

له ماقبل سره يې مناسبت دادی چې کله مصنف رحمه الله دنکاح اوطلاق له مباحثو څخه فارغ شو نو دنفقاتو بيان يې شروع کړ په کومو کې چې نفقة المنكوحة ونفقة المطلقة او نفقه المحارم هم ده کومې چې له ناح سره متعلق دي.

په وجوب نفقه کې أصل دباری تعالى دا ارشادی دی ﴿لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِ﴾ وقوله تعالى ﴿وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ﴾ وقوله ﷺ فی حديث حجة الوداع ﴿وَلَهُنَّ عَلَيْكُمْ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ﴾ همدا راز نفقه د احتباس بدله ده او قاعده ده چې کوم څوک چې دبل چا په مقصود دي حق کې محبوس وي نو د محبوس نفقه پر هغه وي.

(۱)تَجِبُ النَّفَقَةُ لِلزَّوْجَةِ عَلٰى زَوْجِهَا، وَالْكِسْوَةُ(۲) بِقَدْرِ حَالِهِمَا(۳) وَلَوْ مَانِعَةً نَفْسَهَا لِلْمَهْرِ(۴) لَا نَاشِزَةً(۵) وَصَغِيرَةً لَا تُوطَأُ(۶) وَمَحْبُوسَةً بِدَيْنٍ وَمَغْصُوبَةً وَحَاجَّةً مَعَ غَيْرِ الزَّوْجِ وَمَرِيضَةً لَمْ تُزَفَّ(۷) وَلِخَادِمِهَا لَوْ مُوسِرًا

**ترجمه**: واجب دده نفقه دښځې ددي پرخاوندا وجامې ،ددواړو دحال مطابق ،اګرکې دي خپل ځان منع کړی وي دمهرپه وجه سره ،نه هغه چې نافرمانه وي ،یادومره کوچنی وي چې له دي سره وطی نه شې کیدلی ،یابندي وي دقرض په وجه یامغصوبه وي یاحج کونکې وي له غیرخاوندسره ،یاناروغه وي چې خاوندته نه وي حواله شوي ،اوددي خادم نفقه که خاوندغنی وو.

**تشریح**:(۱)دښځې نفقه اوددي لباس ددي پرخاوندواجب دی که څه هم خاوندصغیریافقیروي اوښځه که مسلمانه وي اوکه کتابیه وي فقیره وي اوکه مالداره وي .موطؤه وي اوکه غیرموطؤه وي ،په دي شرط چې داخپل ځان دخاوندکورته وسپاري نوپرخاونددي ماکولات ،مشروبات ،جامې اوسکنی واجب ده ولی چې نفقه دحبس عوض ده اوکوم څوک چې دبل چادمقصودی حق په وجه محبوس وي نودهغه نفقه هم پرده وي ،اوښځه څرنګه چې دخاوندلپاره محبوسه ده لهذادښځې نفقه به هم ددي پرخاوندواجب وي :

(۲)قوله بقدر حالهما ای تجب النفقة والکسوة لها علی الزوج بقدر حالهما ،یعنی دنفقه په مقدارکې به له زوجینو څخه دکوم یوه حال معتبروي ؟مصنف رحمه الله فرمایې چې ددواړزوجینوحال معتبردی همداقول دامام خصاف مختاردی اوهمداقول مفتی به دی لماقال العلامة ابن عابدين :(قوله وبه يفتى) كذا في الهداية وهو قول الخصاف وفي الولوالجية وهو الصحيح وعليه الفتوى (ردالمحتار:۲/۷۰۱)

ددي قول عقلاڅلورصورتونه جوړیږي :نمبر۱.زوجین دواړه مالداره وي .نمبر۲.دواړه مسکینان وي .نمبر۳.خاوندغنی اوښځه مسکینه وي .نمبر۴.ښځه مالداره اوخاوندمسکین وي .په اولنی صورت کې دمالداری نفقه واجب ده په دوهم صورت کې دمسکینی نفقه واجب ده اوپه دریم اوڅلورم صورت کې اوسط درجه نفقه واجب ده ،دامام کرخی اومام شافعی په نزددزوج حال معتبردی لقوله تعالی ﴿ولينفق ذو سعة من سعته﴾.

(۳)قوله ولو مانعة نفسها للمهر ای تجب النفقة لها وان امتنعت من تسليم نفسها لاجل قبض المهر ،یعنی دښځې نفقه لازمه ده که څه هم ښځه دخپل ځان خاوندته له سپاره څخه منع وکړي ترڅوچې خاونددي مهرمعجل اداء کړي یعنی که ښځې دخپل مهرمعجل دعدم اداء په وجه سره خپل ځان خاوندته له سپارلوڅخه منع کړنوپه دي صورت کې دښځې نفقه نه ساقطیږي بلکه نفقه ورکول پرخاوندواجب ده ولی چې دښځې خپل ځان منع کول دخپل حق په وجه سره دی نوداحتباس فوتیدل په داسې وجه سره متحقق شوکومه چې دخاوندله طرفه پیداشوي ده نوګویااحتباس نه ده فوت شوی لهذاددي نفقه هم نه ساقطیږي.

(۴)قوله ولا ناشزة ای لا تجب النفقة والکسوة لو کانت ناشزة ،یعنی که ښځې په سرکشی کولوسره دخاوندله کوره ووته نودي لره نفقه نشته ولی چې احتباس دي په خپله ختم کړی دی ، نوځکه دهمدي احتباس عوض وه لیکن که دادخاوندکورته په راتلوسره بیرته محبوسه شوه بیابه دي لره نفقه واجبه وي.

(۵)قوله وصغيرة ای لا تجب النفقة اذا کانت المرأة صغيرة لا توطأ ،یعنی که ښځه دومره کوچنی وي چې له دي سره جماع نه شې کیدلی نودي لره پرخاوندنفقه واجبه نه ده که څه هم دا خپل ځان خاوند ته وسپاري ولی چې

نفقه دداسې احتباس په عوض کې واجبیږي چې په هغه احتباس سره خاوند فائده حاصله کړي حال داچې دصغیرې احتباس په دې ډول نه دی .اوکه خاوند کوچنی وي په وطی قدرت نه لري اوښځه بالغه دا ستمتاع قابله وي نودې ښځې لره دخاوندپه مال کې نفقه واجبه ده ولی چې ښځې خپل ځان سپارلی دی اوقابل استمتاع هم ده عجزدخاوندله طرف څخه دی دښځې له طرف څخه نه دی .

(۶)قوله ولومحبوسة بدين اى لاتجب النفقة لوكانت محبوسة بدين ،یعنی که ښځه مقروضه وي قرض خواه دقرض په وجه سره بندي کړه ،یاښځه چاپه زورسره غصب کړه ،یاښځه (له خپل خاوند څخه ماسوا)له کوم غیرمحرم سره دحج په سفرولاړه نوپه دې درې واړه صورتونوکې هم ښځې لره نفقه نشته ولی چې نفقه داحتباس په بدله کې وي دلته احتباس باقی نه دې پاتې ،مګردامام ابویوسف رحمه الله په نزد مغصوبې اوله محرم سره دحج په سفرتلونکې ښځې لره نفقه شته ولی چې پرخپله ذمه لازم کوم فرض عمل سرته رسول عذردی .

(۷)قوله ومريضة لم تزف اى لاتجب ايضااذاكانت مريضة لم تنقل الى منزل الزوج ،یعنی که ښځه ناروغه وي اوتراوسه پورې دخاوندکوته نه وي راغلی نودې لره هم پرخاوندنفقه واجب نه ده ولی چې نفقه داحتباس په بدل کې وي دلته احتباس نشته ،هوکه ښځه دخپل خاوندپه کورکې ناروغه شوه نودې لره استحسانا نفقه واجب ده ولی چې احتباس قائم دی ځکه چې خاوندپه مریضه ښځه سره الفت حاصلوي اوددې په مس کولوسره خونداخلې اوهغه دده دکورحفاظت کوي اودوطی منع دعارض په وجه سره ده لهذا دامرض له حیض سره مشابه شوځکه نودې لره نفقه واجب ده .

(۸)قوله ولخادمهالوموسرا اى تجب على الزوج النفقة لخادمهالوموسرا،یعنی که خاوندمالداروونوپرده دښځې دخادم نفقه هم واجب ده ولی چې پرخاوند دښځې کفایت واجب دی اودخادم نفقه دښځې دکفایت تکمیل دی ولی چې ښځې لره دخادم وجودضروري دی ،بیادطرفینو په نزدله یوه خادم څخه دزیاتونفقه پرخاوندنه ده واجبه ولی چې یوخادم دکوردننه اوله کورڅخه دباندې دواړه کارونه پوره کولی شي لهذاددوخادمانوضرورت نشته .حال داچې دامام ابویوسف رحمه الله په نزدپرخاوند دښځې ددووخادمانونفقه واجب ده ولی چې یوخادم دکوردننه اوبل خادم له کورڅخه دباندې کارونه کوي .

((۹)وَلَا يُفَرَّقُ بِعَجْزِهِ عَنْ النَّفَقَةِ ,وَتُؤْمَرُ بِالِاسْتِدَانَةِ عَلَيْهِ(۱۰)وَتُتَمَّمُ نَفَقَةُ الْيَسَارِ بِطُرُوِّهِ ,وَإِنْ قُضِيَ بِنَفَقَةِ الْإِعْسَارِ(۱۱)وَلَا تَجِبُ نَفَقَةٌ مَضَتْ إلَّا بِالْقَضَاءِ أَوْ الرِّضَا وَبِمَوْتِ أَحَدِهِمَا تَسْقُطُ الْمَقْضِيَّةُ(۱۲)وَلَا تُرَدُّ الْمُعَجَّلَةُ

**ترجمه**:اوجلاوالی به نه کول کیږي دخاوندله نفقې څخه دعاجزوالی په وجه سره اوحکم به کیږي ښځې لره دخاوندپه نامه دقرض اخیستلو ،اوپوره کیږي به دوسعت نفقه که وسعت پیداشوکه څه هم قاضي حکم کړی وي دمسکینی دنفقې ،اونه واجبیږي دتیرې شوي زمانې نفقه مګرپه قضاء قاضي سره یاپه رضاسره ،اودکوم یوه په مرګ سره مقرره شوي نفقه ساقطیږي ،اونه دریږي مخکنی نفقه .

**تشریح** :(۹)کوم کس چې خپلې ښځې ته له نفقې ورکولوڅخه عاجزشونودې په وجه سره به دزوجینوپه منځ کې تفریق نه کیږي بلکه قاضي به ښځې ته ووایې چې دخپل خاوندپرذمه قرض واخله یعنی په دې شرط دخورک سامان واخله چې قیمت به یې خاوندادا کوي یابه دخاوندپه مالداره کیدلوسره دده له مال څخه

قرضه اداء کي.ي ولی چې په تفريق کولو کې دخاوند حق بالکليه باطلیږي او په قرض اخيستلو کې دښځې په حق کې صرف تاخير راځي او دتاخير حق ضرر په نسبت دبطلان حق کم دی لهذا ادا اولی ده .

(۱۰)که خاوند مالدار شونو اوس به دي دمالداری په حيثيت سره نفقه ورکوي که څه هم له دي ځخه وړاند ي قاضي پرده دمسکنت نفقه مقرره کړي وي ولی چې دفراخی اوتنګی په موافق نفقه بدلیږي رابدليږي له دي ځخه وړاندي چې کومه نفقه قاضي مقرره کړي وه هغه خودتنګی دحالت نفقه وه دمسکینی دعذر په وجه سره مقررشوي وه اوس چې کله دخاوند حال بدل شونوعذرباقي پاتې نه شو لهذا ښځه دخپل پوره حق مطالبه کولی شي .

(۱۱)که يو څه زمانه تيره شوه اوخاوند خپلې ښځې ته نفقه ورنه کړه بيادي له خاوند ځخه د دي زمانې دنفقې مطالبه وکړه نوښځې لره به هيڅ نه ورکول کيږي ولی چې په نفقه کې دعطيه معنی موجوده ده لهذادنفقې وجوب منتحکم نه دی چې پرخاوندباندې قرض پاتې شې .البته که قاضي ښځې لره پرخاوندنفقه فرض کړه ،ياښځې له خاوندسره په يوخاص مقدار په صلح کولوسره خاوندراضی کړاوس څه زمانه بغيرله نفقې ځخه تيره شوه نوقاضي به ده ته دتيري شوي زمانې دنفقې داداء کولوحکم وکړي ولی چې کله دقاضي دقضاء يامصالحت په وجه سره نفقه دخاوندپه ذمه دين شوه نواوس دزمانې په تيريدلوسره نه ساقطيږي .البته که له زوجينوځخه کوم وفات شويادداوئ په منځ کې فرقت واقع شونودتيري شوي زمانې نفقه ساقطيږي ولی چې دايوقسم عطيه ده کومه چې دهبې په څيرپه مرګ سره ساقطيږي .

(۱۲)که خاوندخپلې ښځې ته ديوه کال نفقه ورکړه بياله زوجينوځخه کوم يووفات شونود ښځينو په نزدبه له ښځې ځخه يادادي له ترکې ځخه څه واپس نه اخيستل کيږي ولی چې نفقه عطيه ده په کومې چې قبضه راغلي ده اوعطيات بعدالموت واپس نه اخيستل کيږي ولی چې ددي حکم انتهاء ته رسيږي ،دامام محمد رحمه الله په نزدڅومره زمانه چې تيره شوي ده دهغې دنفقې حساب به وکړای شي اوښځې ته پرېښودل شي اوباقي به خاوندته واپس کړای شي .

ف:دشيخينوقول مفتی به دی لمافی الدرالمختار.(ولاترد)النفقة والکسوة (المعجلة)بموت اوطلاق عجلها الزوج اوابوه ولوقائمة به يفتي(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۲/۶۱۶)

(۱۳)وَبَاعَ الْقِنَّ فِي نَفَقَةِ زَوْجَتِهِ(۱۴)وَنَفَقَةُ الْأَمَةِ الْمَنْكُوحَةِ إنَّمَا تَجِبُ بِالتَّبْوِئَةِ(۱۵)وَالسُّكْنَى فِي بَيْتٍ خَالٍ عَنْ أَهْلِهِ وَأَهْلِهَا(۱۶)وَلَهُمُ النَّظَرُ وَالْكَلَامُ مَعَهَا(۱۷)وَفَرَضَ لِزَوْجَةِ الْغَائِبِ وَطِفْلِهِ وَأَبَوَيْهِ فِي مَالٍ لَهُ عِنْدَ مَنْ يُقِرُّ بِهِ وَبِالزَّوْجِيَّةِ(۱۸)وَيَأْخُذُ كَفِيلًا مِنْهَا

**ترجمه**:اوغلام به خرڅيږي به دده دښځې په نفقه کې ،اودمنکوحه ښځې نفقه واجبيږي په شب باشي کولوسره ،اوپه داسې کورکې اوسول کوم چې دزوج او وجې له اهل ځخه خالي وي ،اودښځې دکورني والاته جائزده دي ته کتل اوله دي سره خبري کول ،اومقرره کيږي به دغائب کس دښځې او دده دماشومانو اومورا وپلار نفقه دده په مال کې کوم چې له داسې کس ...ي چې هغه دمال او وجيت اقرار کوي ،او اخيستل کيږي به له ښځې ځخه ضامن .

**تشريح**:(۱۳)که غلام دمولی په اجازه سره له کومې ازادي ښځې سره نکاح وکړه نوددي ښځې مقرره نفقه بددي غلام پرذمه قرض وي ولی چې ددي قرض سبب يعنی نکاح موجوده ده اودا وجوب دمولی په حق کې

ظاهردی ولی چې مولی دنکاح په اجازه ورکولوسره په خپله ددي التزام کړی دی نودنوروپورونو په شان به داهم دده په حق کې ظاهروي .لیکن که مولی دنکاح اجازه نه وي ورکړي نوپرغلام دښځې نفقه لازمه نه ده ولی چې دانکاح صحیح نه ده لهذا نفقه هم نه واجبیږي.

(۱۴)که ازادکس دکوم بل چاله مینځې سره نکاح وکړه نودداسې مینځې نفقه په بیتوتت سره واجبیږي یعنی که مولی خپله مینځه ددي له خاوندسره په جلاځای کې شپه تیرولوته پرېښودله نوپر خاونددي نفقه واجب ده ولی چې دمینځې له طرفه احتباس متحقق شواونفقه داحتباس عوض ده،او که مولی جلااوسیدلوته پرې نه شودله نوپرخاوندنفقه واجب نه ده ولی چې احتباس نه دی متحقق شوی.

(۱۵)قوله والسکنی فی بیت الخ عطف علی قوله تجب النفقة ای تجب السکنی ایضا فی بیت خال الخ ،یعنی په خاوند واجب ده چې دی خپله ښځه په داسې ځلامکان کې واوسوي چې په هغه کې نه دخاونددکورنی له والا ووځخه څوک اوسیږي انه دښځې له کورنی څخه څوک اوسیږي لقوله تعالی ﴿ أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُم ﴾ (یعنی دوئ ته داوسیدلومکان ورکړئ چیرته چې تاسې اوسیږی)،نوکله چې ښځې لره سکنی ثابته شوه نود خاوندکوم بل چالره له دي سره په شریکولوکې ددي اضراردی. هوکه ښځې په خپله دخاونددکورنی سره یوځای اوسیدل خوښ کړل نودي لره اختیارشته ولی چې دادخپل حق په کمې باندې په خپله راضی شوه.

(۱۶)که دکومې ښځې موراوپلاراوقریبان په کوم وخت کې له دي سره لیدل غواړي یاخبري کول غواړي نوداددوئ لپاره جائزدی خاونددوئ له دي سره له لیدلواوله دي سره له خبروکولونه شي منع کولی ولی چې له دي څخه قطع کلامی لازمیږي اوقطع رحمی حرام ده اوخاوندپه دي کې هیڅ ضررهم نشته.

ف:ځینې علماء کرام فرمایې چې خاوندښځې لره خپلوالدینوته له ورتللواوددي والدینولره دي ته له راتللوڅخه په هره جمعه کې یوځل نه شي منع کولی اوله والدینوڅخه ماسوانوروقریبانوته په کال کې یوځل دملاقات کولواجازه شته .البته خاوندلره دااختیارشته چې دی دخپلې ښځې والدین اونورو قریبان ته له راتلوڅخه منع کړي ولی چې داکوردخاوندذاتی ملک دی لهذاده لره په خپل کې له راتلو څخه دمنع کولواختیارحاصل دی.

(۱۷)که خاوندغائب شواودده څه مال دبل کس په قبضه کې ووّاوهغه ددي مال اقرارکوي اوداهم اقرار کوي چې دابښځه ددي غائب کس ښځه ده نوقاضی به په دي مال کې ددي غائب کس دښځې اوددهٔ دنابالغ اولاد اوددهٔ دوالدینونفقه مقرره کړي .همداشان که قاضی لره علم وو نوکه څه هم هغه کس له کوم سره چې مال دی اقرارهم نه وي کړی نوبیابه هم قاضی دغائب دمذکوره قریبانولپاره په دي مال کې نفقه مقرروي ولی چې دقابض په اقراریادقاضی په علم سره معلومه شوه چې دي ښځې لره له دي مال څخه دخپلې نفقې داخیستلوحق حاصل دی.

(۱۸)لیکن قاضی به احتیاطاله دښځې څخه کفیل اخلي اوښځه به په دي خبره قسم هم خوري چې دد ې خاونددي لره نفقه نه ده ورکړي .دداغائب درعایت له وجه دي ولی چې کیداشي چې دي له خپل

خاوند څخه خپله نفقه وصول كړي وي يا خاوند دي لره طلاق وركړى وي او عدت تيرشوى وي ، او د ابلا وجه په خاوند باندي معامله مشتبه كوي او دوهم ځل نفقه اخلي .

ف: قاضي به دغائب په مال كې دمذكوره كسانو (ښځې ،والدين ،اولادصغار)ماسوادهيچادنفقې حكم نه شي وركولى ولى چې دښځې وغيره نفقه دقاضي له حكم كولوڅخه وړاندي واجب وه همدا وجه ده چې داكسان دقاضي له حكم څخه وړاندي خپله نفقه وصول كولى شي مگر څرنگه چې دغائب په مال قابض دي كس دوئ ته نه وركوله ځكه نودقاضي حكم دوئ لره اعانت ثابت شو ،پاتې شونورقريبان نو دهغوئ نفقه په قضاقاضي سره واجبيږي او دقاضي قضاء پرغائب جائزنه ده .

(۱۹)وَلِمُعْتَدَّةِ الطَّلَاقِ(۲۰)لَا لِلْمَوْتِ(۲۱)وَالْمَعْصِيَةِ(۲۲)وَرِدَّتُهَا بَعْدَ الْبَتِّ تُسْقِطُ نَفَقَتَهَا لَا تَمْكِينُ ابْنِهِ(۲۳)وَلِطِفْلِهِ الْفَقِيرِ(۲۴)وَلَا تُجْبَرُ أُمُّهُ لِتُرْضِعَ(۲۵)وَيَسْتَأْجِرُ مَنْ تُرْضِعُهُ عِنْدَهَا(۲۶)لَا أُمَّهُ لَوْ مَنْكُوحَةً أَوْ مُعْتَدَّةً(۲۷)وَهِيَ أَحَقُّ بَعْدَهَا مَا لَمْ تَطْلُبْ زِيَادَةً

**ترجمه**: او (نفقه واجب ده )دطلاق عدي تيرونكې لره ،نه دمرگ عدي تيرونكې لره ،او دښځې له طرف څخه دمعصيت په وجه سره عدت تيرونكې لره ،او دښځې مرتده كيدل له بينونت څخه وروسته ساقطوي دښځې نفقه نه ابن زوج لره په خپل ځان قدرت وركول،او (نفقه واجب ده )دخپل فقير ماشوم لپاره ،او مجبوره كولى به نه شي مورخپل ولدته په شيدو وركولو ،او په اجرت دي ونيسي داسې ښځه چې هغه شيدي وركړي ماشوم ته دده له مور سره ،نه دماشوم مور لره كه هغه منكوحه يا معتده وي ،او مور ډيره حقداره ده له عدت څخه وروسته ترڅو چې ډيراجرت ونه غواړي .

**تشريح**:(۱۹)قوله ولمعتدة الطلاق اى تجب النفقة لمعتدة الطلاق ،يعنى كه چاخپلې ښځې ته طلاق وركړ خواه كه طلاق رجعي وي كه طلاق بائن په دواړوصورتونوكې دښځې په عدت كې ښځې لرنفقه اوسكنى واړه واجب دي ولى چې دطلاق رجعي په صورت كې خونكاح قائمه ده ځكه نفقه واجب ده او دطلاق بائن په صورت كې په دي وجه نفقه واجب ده چې نفقه داحتباس عوض ده او احتباس د مقصود بالنكاح (يعنى ماشوم )په حق كې اوس هم شته ولى چې عدت دماشوم دحفاظت لپاره واجب شوى دى نو دوجود احتباس په وجه سره ښځې لره نفقه واجب ده .

ف: امام شافعي رحمه الله فرمايي كومې ښځې ته چې خاوند طلاق بائن يادري طلاقه وركړي وي يا يې خلع كړي وي هغې لره نفقه او سكنى نشته ولى چې فاطمه بنت قيس رضي الله عنها فرمايي چې زما خاوند ماته دري طلاق راكړل ،رسول الله ﷺ ماته نه نفقه فرض كړه اونه سكنى ،احناف ځواب وركوي چې داحديث حضرت عمر رضي الله عنه ردكړى وو فرمايي چې موږ دخپل رب كتاب او دخپل نبى كريم ﷺ سنت ديوې ښځې په وينا سره نه پريږدو مونږ نه پوهيږو چې دا رشتيا وايي او كه دروغ او دي ته يادي او كه يې هيرشوي دي ، ماله نبى كريم ﷺ څخه واوريدل ،نبى كريم ﷺ فرمايل چې كومې ښځې ته دري طلاقه وركړل شي هغې لره نفقه اوسكنى دواړه واجب دي ترڅو چې په عدت كې وي ،نورو هم كبارصحابه كرامو رضي الله عنهم لكه حضرت عبدالله بن مسعود،حضرت زيد بن ثابت ،حضرت اسامه بن زيد او حضرت عائشه رضي الله عنها داحديث ردكړى دى .

(۲۰)قوله لا الموت ای لاتجب النفقة للمتوفی عنهازوجها ،یعنی که دکومې ښځې خاوند وفات شونودي لره نفقه نشته ولی چې نفقه شیئا فشیئا (لږلږ) واجبېږي اوله مرګ څخه وروسته خاوند مال نه لري چې په هغه کې نفقه واجب شي اودورثه په ملک کې نفقه واجبول ممکن نه دي .

(۲۱)قوله والمعصية ای لاتجب النفقة لمعتدة المعصية ،یعنی کوم فرقت چې دښځې له طرفه دمعصیت په وجه سره راغلی مثلا ښځه مرتده شوه یایې دخپل خاوندزوی ته پرخپل ځان قدرت ورکړنودي ښځې لره نفقه نشته ولی چې داخپل نفس لره بلا وجه اوناحق منع کونکې ده نوداداسې شوه لکه چې دي نافرمانۍ کړي وي اوله کورڅخه وتلې وي .

(۲۲)که خاوندخپلې ښځې ته بائن طلاق ورکړله دي څخه وروسته دا(العیاذبالله )مرتده شوه نوددي ښځې نفقه ساقطېږي ،اوکه له طلاق څخه وروسته ښځې ابن الزوج ته پرځان قدرت ورکړنودي ښځې لره به نفقه واجب وي ولی چې په دواړوصورتونوکې فرقت خوپه طلاق سره ثابت شودارتدادا وابن الزوج لره پرځان دقدرت ورکولوپه دي فرقت کې هیڅ دخل نشته ،هوکومه ښځه چې مرتده شوه هغه به بندي خانې ته اچول کیږي ترڅوچې توبه وکړي اوقیدی ښځې لره نفقه نه وي اوکومې ښځې چې ابن الزوج ته پرځان قدرت ورکړی دی هغه نه بندي کیږي لهذادي لره نفقه شته .

**ف**:اوکه یې ابن الزوج ته له طلاق څخه وړاندې پرځان قدرت ورکړنودي ښځې لره به نفقه نه وي ولی چې فرقت په قدرت ورکولوسره راغلی دی کوم چې داسې فرقت دی چې دښځې له طرف څخه دمعصیت په وجه راغلی دی په کوم کې چې نفقه نه وي .

(۲۳)قوله ولطفله الفقير ای تجب النفقة علی الاب لطفله الفقير ،یعنی دنابالغ اولاد(په داسې حال کې چې هغوئ فقراء احراروي) نفقه صرف ددوئ پرپلار واجب ده په دي کې له پلارسره هیڅ څوک شریک نه دی لکه چې دده دښځې په نفقه کې له ده سره هیڅ څوک شریک نه وي لقوله تعالی ﴿وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ﴾ (یعنی دوالداتوحق پرمولودله (زوج) باندي واجب دی )اودوالداتورزق دولدپه وجه سره واجب دی نوکله چې دولدپه وجه پرپلاردوالداتورزق وجب دی نودولدرزق خوبه په طریقه اولی سره پرده واجب وي .

**ف**:ددینې علم طالب که څه هم بالغ وي ددي نفقه دده پرپلارواجب ده په دي شرط چې فقیروي اوپه طلب علم کې کوتاهي نه کوي لکه څرنګه چې عمومانن صبادطالبانوحالت دی له تضییع الوقت څخه ماسواکوم بل کارنشته .(احسن الفتاوی:۴۶۱/۵)

(۲۴)که کوچنی شیدي خوړونکی وي نودده موربه په شیدوروکولونه شي مجبوره کیدای ولی چې قضاء دده پرموردي ماشوم لره شیدي ورکول واجب نه دي ولی چې شیدي ورکول دنفقه قائم مقام دي اودصغیر نفقه په پلارواجب ده کوم بل څوک له ده سره شریک نه دی البته دیانة به ښځې ته دشیدو ورکولوامرکیږي ولی چې داله باب استخدام څخه دی لکه دکورجاروکولو اودوډی پخولوچې دي ته دیانة امرکیږي .

(۲۵) داپه مخکنی مسئله تفریع ده یعنی پلاردي ماشوم ته دشیدوورکولولپاره داسې ښځه په اجرت ونیسې کومه چې دماشوم له مورسره په اوسیدلوماشوم ته شیدي ورکړي ،مګرداهلته ده چیرته چې مرضعه پیداکیږي اوکه چیرته مرضعه نه پیداکیدله نوبیابه مورپه شیدوورکولومجبوره کیږي ،اوله مورسره په اوسیدلو ماشوم ته دشیدوورکولووجه داده چې دپرورش کولوحق مورلره دی .

(۲۶) قوله لامه ای لایستاجرالاب ام الطفل لارضاعه ،یعنی که خاوند دخپل ماشوم موردشیدو ورکولولپاره په اجرت ونیوله حال داچې داپه دي وخت کې دخاوندپه نکاح کې ده یاد هغه دطلاق په عدت کې ده نودي لره په اجرت نیول جائزنه دي ولی چې دیانة پرښځې شیدي ورکول واجب دي لقوله تعالی ﴿ وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ ﴾،مګرباحتمال عذرد امعذوره ګڼل شوي ده نوکله چې دي په اجرت سره په شیدو ورکولواقدام وکړنوظاهره شوه چې داپه شیدوورکولوقادره ده ځکه پردي شیدي ورکول واجب دي اوپرخپله ذمه دواجب عمل اداء کول اجرت نه واجبوي .

(۲۷) له عدت تیرولوڅخه وروسته دماشوم موردماشوم ته دشیدوورکولولپاره په اجرت نیول ترکومې بلې ښځې ډیره حقداره ده یعنی که له عدت څخه وروسته دماشوم مورپه اجرت سره په شیدو ورکولوراضي شوه نوپه دي صورت کې د ماشوم مورډیره مستحقه ده چې داپه اجرت ونیول شي ولی چې نکاح بالکلیه ختمه شوه دماشوم موراوس داجنبي ښځې په شان ده په دي شرط چې دابه له اجنبیه ښځې څخه دزیات اجرت مطالبه نه کوي ولی چې داپرخپل بچي ډیره شفیقه ده او ماشوم خپلې مورته په سپارولوکې دماشوم رعایت هم دی ،اوکه دماشوم مورله اجنبیه څخه دزیات اجرت مطالبه کوله نودماشوم پلاربه نه شي مجبوره کولی چې ماشوم به دده مورته په ډیراجرت سره سپاري ولی چې په دي کې پلارته ضرردی .

(۲۸) وَلِأَبَوَيْهِ وَأَجْدَادِهِ وَجَدَّاتِهِ لَوْ فُقَرَاءَ (۲۹) وَلَا تَجِبُ مَعَ اخْتِلَافِ الدِّينِ إِلَّا لِلزَّوْجِيَّةِ وَالْوِلَادِ (۳۰) وَلَا يُشَارِكُ الْأَبَ وَالْوَلَدَ فِي نَفَقَةِ وَلَدِهِ وَأَبَوَيْهِ أَحَدٌ (۳۱) وَلِقَرِيبٍ مَحْرَمٍ لِفَقِيرٍ عَاجِزٍ عَنِ الْكَسْبِ بِقَدْرِ الْإِرْثِ لَوْ مُوسِرًا

**ترجمه**:او (نفقه واجب ده ) دمورواوپلاراواجداداوجداتوکه هغوي فقراء وي ،اونفقه واجب نه ده ددین له اختلاف سره مګرپه زوجیت اوولادت سره ،اونه دي شریک له پلاراوی سره دخپل اولاداووالدینوپه نفقه کې هیڅوک ،او (نفقه واجب ده ) قریب محرم لره که هغه فقیرله کسب کولوڅخه عاجزوي بقدرارث که غني وي .

**تشریح**:(۲۸) قوله ولابویه واجداده وجداته لوفقراء ای تجب النفقة والکسوة لابویه واجداده وجداته لوفقراء ،یعنی په انسان واجب ده چې دی به خپل مورا وپلارنیکه اوانانه نفقه ورکوي په دي شرط چې هغوئ فقراء وي که څه هم په دین کې له ده څخه مخالف وي ،دوالدینودنفقې په باره کې دلیل دباری تعالی ارشاددی ﴿ وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا ﴾ (اوپه دنیاکې له والدینوسره په معروفه طریقه اوسیږه ) کوم چې دکافروالدینوپه باره کې نازل شوی دی چې له کافروالدینوسره په دنیاکې په معروفه طریقه اوسیږي اوښکاره خبره ده چې په معروفه طریقه سره اوسیدنه دانه ده چې په خپله خودالله تعالی په نعمتونوکې عیش کوي اووالدین پریږدي چې له لوږي مره شي ،پاتې شواجداداوجدات نودوئ نفقه ځکه واجب ده چې هغوئ هم له امهاتواواباءڅخه دي همداواجه ده چې دمیراث په باب کې اجداداوجدات دموراوپلارقائم مقام دي .

(۲۹)ددین له اختلاف سره سره دچانفقه نه واجبیږي ماسوا له ښځې اوله هغو څخه چې له هغوئ سره دولادت قرابت وي یعنی اصول اوفروع مثلاً والدین ،اجداد ،جدات ،زامن اولمسیان وغیره ،له اختلاف دین سره سره دښځې نفقه په دي وجه واجب ده چې دښځې نفقه داحتباس په مقابله کې ده او احتباس داتحاددین اواختلاف دین په هردووارو صورتونوکې موجودی ،اومذکوره بالاقریبانو نفقه په دي وجه واجب ده چې ددوئ په خپل منځ کې علاقه دجزئیت ده اودانسان جزء دده ددات په حکم کې وي نولکه څرنګه چې انسان دخپل ذات نفقه دکافروالی په وجه سره نه منع کوي په همدي ډول له کوموسره چې دجزئیت علاقه وي دهغې نفقه هم دکفرپه وجه سره نه شي منع کولی ،البته که هغه حربی کافروي نوبیا دهغه نفقه واجب نه ده ولی کوم خلک چې له موږسره په دین کې جنګ کوي له هغوسره له نیکئ کولو موږ منع کړل شوي یو .

(۳۰)که ماشومان مسکینان وي پلاراومورمالداروي یاوالدین مسکینان وي اودهغوئ بچی مالداروي نوپه اول صورت کې ددوئ نفقه ددوئ په پلارواجب ده اوپه دوهم صورت کې پربچی لازم واجب ده کوم بل څوک به په نفقه کې له ده سره شریک نه وي ولی چې نفقه دقرابت په وجه واجبیږي اوبچی له والدینوسره ترټولوزیات قرابت لري اوپلارله بچیانوسره ترټولوزیات قرابت لري په دي وجه دبچیانونفقه صرف په پلاراودوالدینونفقه صرف په بچی واجبیږي ،اودوالدینوپه نفقه کې نراوښځه دواړه برابردي .

(۳۱)قوله ولقریب محرم فقیرعاجزعن الکسب بقدرالارث ای تجب النفقة لقریب محرم فقیرعاجزعن الکسب بقدرالارث،یعنی که قریب ذی رحم محرم حاجت منداوله کارکولو څخه عاجزوي نودده وارث که مالدار وي نودده نفقه پردي وارث واجبه ده ولی چې احسان کول په قرابت قریبه کې واجبیږي اوپه قرابت بعیده کې نه واجبیږي ،اوپه قرابت قریبه اوبعیده کې فاصل دادی چې که ذی رحم محرم وي نوقرابت قریبه دی که نه نوقرابت بعیده دی وقدقال الله تعالی ﴿ وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذَلِكَ ﴾(یعنی پروارث ددي مثل واجبیږي )، بیانفقه په قدرمیراث واجبیږي ولی چې بقدرحاصلات انسان تاوان پورته کوي یعنی څومره چې ده ته له میراث څخه حصه حاصلیږي په هغه حساب سره بالفعل مورث ته نفقه ورکوي ،مګرشرط دادی چې هغه به خپله غنی وي نوکه هغه په خپله فقیروي نوهغه څرنګه چې عاجزدی ځکه به نوپه ده نفقه واجبه نه وي ولی چې دزوجیت اوولادت له نفقاتو څخه ماسوانوري نفقې په عاجزنه واجبیږي .

(۳۲)وَصَحَّ بَيْعُ عَرَضِ ابْنِهِ لَا عَقَارِهِ لِنَفَقَتِهِ (۳۳)وَلَوْ أَنْفَقَ مُودَعُهُ عَلَى أَبَوَيْهِ بِلَا أَمْرٍ ضَمِنَ (۳۴)وَلَوْ أَنْفَقَا مَا عِنْدَهُمَا لَا (۳۵)وَلَوْ قَضَى بِنَفَقَةِ الْوِلَادِ وَالْقَرِيبِ وَمَضَتْ مُدَّةٌ سَقَطَتْ (۳۶)إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ الْقَاضِي بِالِاسْتِدَانَةِ (۳۷)وَلِمَمْلُوكِهِ (۳۸)فَإِنْ أَبَى فَفِي كَسْبِهِ (۳۹)وَإِلَّا أُمِرَ بِبَيْعِهِ

**ترجمه** :اوصحیح دی دخپل زوی اسباب خرڅول دنفقې لپاره نه دده ځمکه ،اوکه مودع مصرف کړ دمودع مال دهغه پروالدینوبلااجازت نوضامن کیږي ،اوکه والدینومصرف کړکوم مال چې له دوئ سره نونه ضامن کیږي ،اوکه حکم وکړل شوداولادیاقریبانو دنفقې اوڅه زمانه تیره شوه نوساقطیږي،مګر داچې قاضی دقرض اخیستلوحکم وکړي ،او(واجب ده)دخپل غلام نفقه ،نوکه ده انکاروکړنودغلام له ګټې څخه ،که نه نو حکم به کول کیږي دخرڅولو .

**تشریح** :(۳۲)دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدوالدینولره دخپل غائب زوی منقوله جائیداد په خپلونفقه کې خرڅول استحساناجائزدی لیکن که پلاردخپل غائب زوی ځمکه (غیرمنقوله جائیداد)خرڅ کړنوجائزنه دی

،دصاحبینو په نزد منقوله او غیرمنقول جائیداد یو هم خرڅول جائزنه دی او قیاس هم همدادی ولی چې دپلار ولایت دزوی په بالغ والی سره منقطع شو همدا وجه ده چې که زوی حاضروي نو پلار دخپل زوی دمال دخرڅولو اختیارنه لري ،دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادی چې پلار ته دغائب په مال کې دحفاظت ولایت حاصل دی او مال منقول خرڅول دحفاظت له بابه دی او په غیرمنقوله کې دا خبره نشته ولی چې هغه په خپله محفوظ دی لهذا دهغه دخرڅولو ضرورت نشته .

ف: دامام صاحب قول راجح دی لمافی الدرالمختار: (وبیع الاب) لان له ولایة التصرف (عرض ابن.......لاعقاره). قال العلامة ابن عابدین: ثم ماذکرهنا قول الامام وهو الاستحسان وعندهما هو القیاس ان المنقول کالعقار لانقطاع ولایة الاب بالبلوغ (الدرالمختار مع الشامیة ۲/۷۳۳).

(۳۳) که دغائب زوی مال دکوم اجنبی په قبضه کې دامانت په ډول وي او دده پر والدینو دقاضی له اجازت څخه بغیر مصرف کړنو دا اجنبی به ضامن وي ولی چې دي اجنبی دغیر په مال کې بغیر له ولایت او نیابت څخه تصرف کړی دی ولی چې دی خو صرف په حفاظت کولو کې نائب دی کوم بل اختیار نه لري ،البته که قاضی ده ته حکم وکړ چې دی دي دغائب له مال څخه دهغه والدینو ته نفقه ورکړي نو دا اجنبی کس به ضامن نه وي ولی چې دقاضی حکم پر ده لازم دی ځکه چې دقاضی ولایت پرټولو عام دی .

(۳۴) قوله ولو انفقا ماعندهما لا ای لو انفق الوالدان من مال الذی عندهما لولدهما الغائب لایضمان ،یعنی که زوی غائب وي او دده مال دوالدینو په قبضه کې وي او والدینو له هغه څخه خپله نفقه واخیستله نو دوئ به ضامن نه وي ولی چې دوئ خپل حق حاصل کړی دی ځکه چې ددوئ نفقه دقاضی له قضاء څخه وړاندي واجب ده لهذا هغوئ خپل حق وصول کړی دی ځکه به نو ضامن نه وي علی مامر .

(۳۵) که قاضی پرکوم چاباندي دده دزوی ،والدینو او نور قریبانو نفقه مقرره کړه بیا له نفقه ورکولو څخه بغیر څه زمانه تیره شوه نو ددي زماني نفقه ساقطه شوه ولی چې ددي کسانو نفقه دضروریاتو دپوره کولو لپاره واجبیږي حتی که دا کسان مالداروي نو ددوئ لپاره نفقه نه واجبیږي او بلا نفقه په څه زمانه تیریدلو سره دهغې زماني ضرورت پوره شوی دی ځکه نو ددي مدت نفقه ساقطیږي .

(۳۶) البته که قاضی دي کسانو ته پرغائب دقرض اخیستلو حکم ورکړنو په زمانه تیریدلو سره به ددوئ نفقه ساقطه نه وي ولی چې قاضی لره ولایت عامه حاصل دی لهذا دقاضی حکم ورکول داسي دی لکه چې غائب په خپله اجازت ورکړی وي چې پرما قرضه واخله نو دا قرضه دده پرذمه شوه لهذا اوس دمدت په تیریدلو سره نه ساقطیږي .

(۳۷) قوله ولمملوکه ای تجب النفقة علی المولی لمملوکه ،یعنی پرمولی دخپل غلام او مینځې نفقه واجب ده ،غلام او مینځه خواه که قن وي او که مدبروي یا ام ولدوی ،صغیروي یا کبیروي دټولو نفقه پرمولی واجب ده ﴿لقوله ﷺ هم اخوانکم وخولکم جعلهم الله تحت ایدیکم فمن کان اخوه تحت یدیه فلیطعمه مما یاکل ولیلبسه مما یلبس ولا تکلفوهم ما یغلبهم فان کلفتموهم فاعینوهم ﴾ (یعنی ستاسي غلامان ستاسي ورونه دي دوئ الله تعالی ستاسي تر لاسو لاندي کړي دي نو ور خوروئ دوئ ته له هغه څخه کوم چې تاسي خوری او وراغوندئ دوئ ته له هغو څخه کوم چې تاسي اغوندی او دالله تعالی بندګانو ته عذاب مه ورکوئ).

(۳۸)قوله فان ابى ففى كسبه اى ان امتنع المولى عن الانفاق على مملوكه فنفقة المملوك فى كسبه ،يعنى كه مولى دوئ ته له نفقې وركولو څخه انكاروكړنو دوئ ته به له خپل كسب څخه نفقه وركول كيږي يعنى كتل كيږي به چې په مينځه او غلام كې دكاركولو صلاحيت شته او كه نه شته ،كه دوئ كاركولى شوى نو كاردې وكړي او خپل ګذاره دي وكړي ياكه دوئ له وړاندي څخه څه ګټلي وي او هغه موجودوي نو هغه دي پردوئ مصرف شې ولى چې په دې كې دطرفينو رعايت دى په دي دول چې مملوک به كاروكړي او خوړک به وكړي او نوژوندى به پاتې شې او دمولى به ملک باقى پاتې وي .

(۳۹)قوله والاامر ببيعه اى وان لم يكن له كسب امر المولى ببيع المملوک ،يعنى كه ددوئ ګټه نه وي يعنى هغوئ دواړه دكاركولو صلاحيت نه لري مثلاً غلام شل وي او مينځه داسې وي چې خلګ يې په اجرت نه اخلې نو په دې صورت كې به مولى مجبوركړاى شې چې دوئ خرڅ كړي ولى چې غلام دبنى ادم والى په وجه سره دنفقه مستحق دى او په خرڅولو سره دده حق اداء كيږي حال دا چې مولى لره دمملوک دقيمت په حصول سره دده حق هم اداء كيږي .

# كِتَابُ الْعَتَاقِ

## داكتاب دعتاق په بيان كې دى

عتق او عتاق لغةً په معنى دقوت دي شرابو ته هم په همدي وجه عتيق ويل كيږي چې په هغو كې زيات قوت موجوددى او عتق په اصطلاح كې هم دضعف (يعنى رقيت) ازاله ده او دقوت حكميه (يعنى حريت) اثبات دى ، شرعاً دمولى له خپل مملوک څخه خپل حق دملكيت په داسې طريقه ساقطولو ته چې هغه آزاد شي عتق ويل كيږي.

مصنف رحمه الله دطلاق له مباحثو او دهغه له متعلقاتو يعنى نفقاتو وغيره څخه فارغ شونو دعتاق په مباحثو يې شروع وكړه . دطلاق او عتاق په مابين كې مناسبت دادى چې په دواړو كې رفع دقيد ده او له دواړو څخه يو هم بعدالوقوع فسخ نه قبلوي ،بياطلاق كه څه هم غيرمندوب دى بيا يې هم هغه مقدم كړى دى وجه يې داده چې ترڅو دنكاح په مقابل كې ذكرشي ،او دعتاق خاص له نفقاتو سره مناسبت دادى چې په اعتاق كې داحياء معنى موندل كيږي ولى چې كفرحكما مرګ دى لقوله تعالى ﴿اومن كان ميتافاحييناه﴾ اى كافرافهديناه .او رق دكفر اثردى نو په دي وجه ازاله رق احياء ده او همدا داحياء معنى په نفقاتو كې هم شته كوم چې ظاهره دى .

اعتاق مندوب اليه عمل دى قال عليه السلام ،،ايماامؤمن اعتق مؤمنافى الدنيااعتق الله بكل عضو منه عضوا منه من النار ،همدا وجه ده چې دنارينه لپاره غلام او دښځې لپاره مينځه آزادول مستحسن بلل شوى دى ددې لپاره چې مقابلة الاعضاء بالاعضاء متحققه شي .

(۱)هو إثبات القوة الشرعية للمملوك عند زوال الرق والملک (۲) ويصح من حر مكلف لمملوكه (۳) بأنت حر أو بما يعبر به عن البدن، وعتيق ومعتق ومحرر وحررتك وأعتقتك نواه أو لا (۴) وبلا ملك ولا رق ولا سبيل لي عليك إن نوى

**ترجمه:** هغه شرعي قوت دی کوم چې ثابتيږي په محل کې د رقيت او ملک د زائليدلو پروخت، او صحيح دی له ازاد او عاقل او بالغ شخصه کله چې هغه ووايي خپل غلام ته، ته ازاد دي او په هغو الفاظو سره د کوم په ذريعه چې له ټول بدن څخه تعبير کيږي او په دې قول سره چې ته ازاد شوی يې يا ازاد کړای شوی يې او ما ته ازاد کړی يې خواه که نيت وکړي يا يې نه وکړي، او په دې سره چې پرتا زما ملک نشته او رقيت نشته او ما له پرتا اختيار نشته که يې د هغه نيت کړی وي.

**تشريح:** (۱) مصنف رحمه الله د عتق اصطلاحي تعريف داسې کړی دی چې عتق د يو داسې قوت شرعيه نوم دی کوم چې په غلام کې هغه وخت ثابتيږي په کوم وخت کې چې له غلام څخه غلامي او د مالک ملک زائل شي، په ځينو نسخو کې عبارت په دې ډول دی ، هو اثبات القوة الشرعية في المملوک. يعنی په غلام کې د قوت شرعية ثابتولو ته عتق ويل کيږي ، قوت شرعية دا دی چې اوس هغه د شهادت اداء کولو اهل ګرځي او پر خپل ځان او اولاد باندې هغه ته ولايت حاصليږي .

(۲) مصنف رحمه الله د صحت اعتاق لپاره درې شرطونه ذکر کړي دي .\نمبر۱، چې ازادونکی به خپله آزاد وي ولې چې اعتاق صرف په خپل ملک کې صحيح کيږي او څوک چې په خپله مملوک وي د هغه هيڅ ملک نه وي لهذا مملوک يو څوک نشي آزادولای .\نمبر۲. د آزادونکی به مکلف يعنی عاقل بالغ وي ولی چې په نابالغ او ليونی کې د آزادولو اهليت نشته په دې وجه چې آزادول په ظاهره ضرر وي همدا وجه ده چې ولي ته د نابالغ له طرف څخه د آزادولو اجازت شرعاً نشته ..\نمبر۳. غلام به د آزادونکی په ملک کې وي يا د غلام د آزادولو نسبت د خپل ملک طرف ته وکړي لکه ، ان ملکتک فانت حر (يعنی که زه ستا مالک شوم نو ته آزاد يې )لقوله ﷺ ﴿لا عتق فيما لا يملک ابن آدم﴾(يعنی انسان چې د کوم مالک نه وي په هغه کې ازادول نه وي ).

(۳) قوله بانت حر اى يصح بقوله انت حر. يعنی که مولی خپل غلام يا مينځې ته وويل ، انت حر ، يا يې داسې لفظ ووايو چې په هغه سره له ټول بدن څخه تعبير کيږي مثلاً ووايي ، راسک حر ، (ستا سر آزاد دی)، يا ووايي ، وجهک حر ، (ستا مخ آزاد دی) يا ووايي، رقبتک حر، (ستا غاړه آزاد ده)، يا ووايي ، بدنک حر ، (ستا بدن آزاد دی )، يا ووايي ، انت معتق، (ته آزاد يې )يا داسې ووايي ، أنت عتيق، (ته آزاد يې )، يا ووايي ، انت محرر، (ته ازاد کړای شوی يې) يا داسې ووايي ، قد حررتک، (ما ته آزاد کړی وي)، يا ووايي، اعتقتک، (ما ته آزاد کړی يې )، نو هغه آزاديږي خواه که مولی په دې الفاظو سره د آزادولو نيت کړی وي او که يې نه وي کړی ولی چې دا الفاظ د آزادولو په معنی کې صريح دي شرعاً او عرفاً په دې معنی کې مستعمل دي او الفاظ صريحه په عمل کولو کې د نيت محتاج نه دي .نو که مالک وويل چې ما له کار څخه د آزادولو نيت کړی وو نو قضاء به د هغه تصديق نه کيږي ولی چې دا خلاف ظاهر ده ، البته ديانةً به د هغه تصديق کيږي ولی چې دا د ده د کلام محتمل دی .

(۴) قوله بلا ملک لی عليک اى يصح بقوله لعبده لا ملک لی عليک . يعنی که مولی خپل مملوک ته وويل ، لا ملک لی عليک، (زما پرتا باندې ملک نشته )يا ووايي ، لا سبيل لی عليک ، (زما لپاره پرتا هيڅ لاره نشته ) ولا رق لی

عليک،(پرتازمالپاره رقيت نشته )او له په دي الفاظو سره يې دآزادولو نيت وکړ نو دا غلام آزاديږي ،او که يې دآزادولو نيت نه وکړی بيا نه آزاديږي ،ولی چې دا الفاظ له کنايه څخه دي په دي وجه چې په دي کې دوه احتماله دي يو دادی چې زماملک پر تاباندي په دي وجه نشته چې ماته خرڅ کړی يې دوهم احتمال دادی چې ملک په دي وجه نشته چې ماته آزاد کړی يې لهذا دا دکنايه کيدلو په وجه سره نيت ته محتاج دی.

(۵) وَهٰذَاابْنِي اَوابي اَو اُمِّي (٦) وَهٰذَامَوْلَايَ اَوْيَامَوْلَايَ اَوْيَاحُرُّ اَوْيَاعَتِيقُ (٧) لَا بِيَاابْنِي وَيَاأَخِي وَلَاسُلطَانَ لِي عَلَيْکَ (٨) وَاَلْفَاظِ الطَّلَاقِ (٩), وَأَنْتَ مِثْلُ الْحُرِّ

**ترجمه**:او په دي ويناسره ،چې، دا زمازوی دی ،يا زما پلاردی، يازمامور ده ،اودا زما مولی دی ياأی زمامولی او ياأی حرّيا ای آزاد ،نه په دي ويناسره چې أی زمازويه يا ای زماورور ه ،او پر تاباندي زما سلطنت نشته ،او په الفاظودطلاق سره،او نه په دي ويناسره چې ته دحر په شان يې.

**تشريح**:(۵)قوله بهذاابنی ای يعتق بقوله لعبده هذاابنی .يعنی که مولی خپل غلام په اشاره کولو سره وويل هذاابنی، (دا زمازوی دی )نو که دغلام کوم معروف نسب نه وو اودغلام عمردومره ووچې له مولی څخه ددزيږيدل ممکن وونوله مولی څخه دده نسب ثابتيږي اوکله چې نسب ثابت شو نو آزادهم شو﴿لقوله ﷺ من ملک ذارحم محرم منه فهوحر﴾(يعنی کوم څوک چې دخپل ذی رحم محرم مالک شي نو هغه آزاددی).

او که دغلام نسب معلوم وونو له مولی څخه دهغه نسب نه ثابتيږي البته غلام آزاديږي ولی چې د،هذاابنی ،دحقيقي معنی دمتعذرکيدلوپه وجه سره به هغه پرمجازي معنی يعنی ازادي محمول کيږي ولی چې زوی والی دازادي سبب دی نودسبب په ذکرکولو سره يې مسبب مرادکړی دی ،همدا حکم ددي وينا هم دی چې څوک خپل غلام ته په اشاره کولوسره ووايې چې هذاابی(دازماپلاردی )ياخپلې مينځې ته په اشاره کولوسره ووايې هذاامی (دازمامورده )لماقلنا.

(۶)قوله وهذامولای ای يعتق بقول المولی لعبده هذامولای .يعنی که مالک دخپل غلام طرف ته اشاره وکړه او دايې وويل، هذامولای ،(دا زمامولی.دی )،ياغلام ته داورازکولوپروخت ووايې يامولای ،(ای زما مولی)،يايې ووېل ، ياحرّ ،اوياعتيق، (ای آزاد )نوبغير له نيت څخه آزاديږي ولی چې ،ياحرّوياعتيق ،په عتق کې دصريح کيدلو په وجه سره نيت ته احتياج نه لري .او خپل غلام ته دمولی ويلو په صورت کې لفظ مولی مشترک دی يوه معنی يې معتَق (يعنی دآزادونکی) ده او دوهمه معنی يې دده معتَق(آزادکړای شوی)ده او په عبد کې صرف دا معنی مناسبه ده لهذا دلته دا الفاظ په الفاظو صريحه و (لکه ياحرّياعتيق) پوري په ملحق کيدلوبلانيت عمل کوي.

(۷)قوله لابياابنی ويااخی ای لايصح العتق بقوله لعبده ياابنی ويااخی .يعنی که مولی خپل غلام ته وويل ،ياابنی او يااخی ،(ای زمازويه يا ای زماورور ه )نو غلام نه آزاديږي ولې چې دا الفاظ عادة داکرام او شفقت لپاره استعماليږي دهغو حقيقي معنی مرادنه وي ،او که مولی خپل غلام ته ووايې ،لاسلطان لی عليک ،(پر تاباندې زماسلطنت نشته )او دآزادولو نيت وکړي نو غلام نه آزاديږي ځکه سلطان له قبضې څخه عبارت دی او دقبضې نفي دملک نفي ته مستلزمه نه ده ولی چې داکيداشي چې ملک قائم وي او قبضه نه وي لکه چې په مکاتب کې دمولی ملک قائم دی مګر قبضه نشته .

(۸) قوله و الفاظ الطلاق ای لایقع العتق بالفاظ الطلاق. یعني که مولی خپلې مینځې ته هغه الفاظ ووایي چې په هغو سره طلاق واقع کیږي مثلاً ووایي «انت طالق» (ته طلاقه یې)، یا «انت بائن» (ته بائنه یې) او په دې الفاظو سره نیت د آزادیدلو وکړي نو مینځه نه آزادیږي ځکه ملک یمین قوي دی تر ملک نکاح نو چې کوم الفاظ ضعیف (نکاح) زائله وي ضروري نه ده چې هغه قوي (ملک یمین) دې هم زائل کړي. او د طلاق د ټولو الفاظو صریحه و کنایه همدا حکم دی.

(۹) قوله و انت مثل الحر ای لایعتق بقوله لعبده انت مثل الحر. یعني که مولی خپل غلام ته ووېل «أنت مثل الحرّ» (ته د آزاد په شان یې) نو غلام نه آزادیږي ولې چې لفظ مثل په عرف کې په ځینې اوصافو کې د مشترک والي لپاره استعمالیږي نو معلومه نه ده چې غلام ته یې له ازاد سره په کوم وصف کې تشبیه ورکړې ده لهذا په ازادیدلو کې شک پیدا شو او د شک په وجه سره ازادي نه واقع کیږي.

(۱۰) وَعَتَقَ بِمَا أَنْتَ إِلَّا حُرٌّ (۱۱) وَبِمِلْكِ قَرِيبٍ مَحْرَمٍ، وَلَوْ كَانَ الْمَالِكُ صَبِيًّا أَوْ مَجْنُونًا (۱۲) وَبِتَحْرِيرٍ لِوَجْهِ اللَّهِ وَلِلشَّيْطَانِ وَلِلصَّنَمِ وَبِكُرْهٍ وَسُكْرٍ (۱۳) إِنْ أَضَافَهُ إِلَى مِلْكٍ أَوْ شَرْطٍ صَحَّ

**ترجمه:** او آزادیږي په دې ویلو سره چې نه یې ته مګر آزاد، او د خپل قریب محرم په مالک کیدلو سره که څه هم مالک ماشوم وي یا لیونی وي، او د الله ﷻ د رضاء لپاره یا د شیطان لپاره یا د بت لپاره په ازدولو سره او په زور او په حالت نشه کې په ازادولو سره، او که یې آزادي منسوب کړه د ملک یا شرط طرف ته نو صحیح ده.

**تشریح:** (۱۰) او که مالک خپل غلام ته ووېل «ماانت الاحر» (نه یې ته مګر آزاد) نو غلام آزادیږي ولې چې له نفي څخه استثناء کول د تأکید په ډول سره اثبات دی لکه چې په کلمه «شهادت» «لااله الاالله» کې دی.

(۱۱) قوله و بملک قریب ای یقع العتق بملک الرجل القریب. یعني کوم شخص چې د خپل ذی رحم محرم (هو القریب الذی حرم نکاحه ابدا) مالک شي نو هغه پر ده باندې آزادیږي که مالک صغیر وي او که کبیر، مجنون وي او که عاقل وي، ذمي وي او که مسلمان وي لقوله ﷺ ﴿من ملک ذا رحم محرم منه فهو حر﴾ (یعني کوم څوک چې د خپل ذی رحم محرم مالک شي نو هغه آزاد دی).

(۱۲) قوله و بتحریر لوجه الله ای یصح العتق ایضا بتحریر لوجه الله. یعني که یو شخص خپل غلام د الله ﷻ یا د شیطان یا بت لپاره آزاد کړ نو په دې درې سره صورتونو کې غلام آزادیږي، (لیکن په آخیري دوه صورتونو کې معتِق ګنهګار یږي، بل ان قصد التعظیم کفر) ولې چې د اعتاق صدور له اهل اعتاق (یعني عاقل بالغ) څخه شوی دی او په خپل محل کې متحقق شو ولې چې غلام د هغه مملوک دی لهذا آزاد یږي، او که یو څوک د خپل غلام په آزادولو باندې مجبور کړای شو بیا نو هغه ازاد کړ، یا دیو حرام شئ له خوړلو یا څښلو څخه مست انسان خپل غلام آزاد کړ نو آزادیږي ولې چې اعتاق له خپل اهل څخه په خپل محل کې صادر شو کما مرّ.

(۱۳) او که یو چا د غلام آزادي د ملک طرف ته منسوب کړه مثلا وي ویل «ان ملکتک فانت حر» (که زه ستا مالک شوم نو ته آزاد یې) یا یې د شرط طرف ته منسوب کړه مثلا وي ویل «ان دخلت الدار فانت حر»، (که ته

كورته داخل شوې نو ته آزاد يې) نو دا صحيح ده ولې چې آزادول داسقاط حق له قبيلې څخه دى او اسقاطات په شرط پورې معلق كول صحيح دي لكه څرنګه چې په طلاق كې صحيح دي وقد سبق بيانه.

(۱۴) وَلَوْ حَرَّرَ حَامِلًا عَتَقَا (۱۵) وَإِنْ حَرَّرَهُ عَتَقَ فَقَطْ (۱۶) وَالْوَلَدُ يَتْبَعُ الْأُمَّ فِي الْمِلْكِ وَالْحُرِّيَّةِ وَالرِّقِّ وَالتَّدْبِيرِ وَالِاسْتِيلَادِ وَالْكِتَابَةِ (۱۷) وَوَلَدُ الْأَمَةِ مِنْ سَيِّدِهَا حُرٌّ

**ترجمه:** او كه مولى حامله مينځه آزاده كړه نو مينځه او حمل دواړه آزاديږي، او كه يې صرف حمل آزاد كړ نو صرف حمل آزاديږي، او ماشوم د مور تابع دى په ملک او حريت او په غلام كيدلو كې او په مدبر كيدلو كې او په ام ولد كيدلو كې او په كتابت كې، او د مينځې ماشوم له خپل مولى څخه ازاد دى.

**تشريح:** (۱۴) كه مالک خپله حامله مينځه آزاده كړه نو د مينځې په تبع سره حمل هم ازاديږي ولې چې حمل د مينځې د كوم عضو په څير دى نو لكه څرنګه چې د مينځې په ازادولو سره د مينځې اعضاء ازاديږي همداشان د هغې حمل هم ازاديږي.

(۱۵) كه يې صرف حمل آزاد كړ نو فقط حمل آزاديږي د هغه مور نه آزاديږي ولې چې د اصالة ازاديدلو خوهيڅ وجه نشته، او مينځه د حمل په تابع كولو كې قلب موضوع لازميږي ولې چې وضع عقلي خو داده چې حمل د مور تابع وي په دې وجه چې حمل كالجزء من الام دى نو د مور په تابع كرځولو كې كل د جزء تابع كيږي او د كل جزء لره په تابع كيدلو كې قلب موضوع ده په دې وجه مور نه ازاديږي.

(۱۶) حمل په څو شيانو كې د مور تابع دى (۱) په ملک كې مثلاً كوم كس د مينځې داخيستلو ياهبې په وجه مالک شو نو دا كس د دې مينځې د حمل هم مالک ګرځي (۲) په حريت كې مثلا كه چا حامله مينځه آزاده كړه نو بچى د مور په تابع كيدلو سره آزاديږي كمامرّ (۳) په رقيت كې مثلا يوه حامله مينځه له دارالحرب څخه ونيول شوه نو د هغې بچى هم د مور په تبع سره غلام ګرځي (۴) په تدبير كې مثلا يو چا خپله حامله مينځه مدبره كړه نو د مور تابع كيدلو سره بچى هم مدبر كيږي، (۵) په استيلاد كې مثلا مولى خپله ام الولده يو چا ته په نكاح وركړه نو د مولى له مرګ څخه وروسته بچى د مور په تابع كيدلو سره آزاديږي (۶) په كتابت كې مثلا يو مولى خپله حامله مينځه مكاتبه كړه نو د هغې بچى هم د مور په تابع كيدلو سره مكاتب كيږي په دې ټولو صورتونو كې بچى د پلار تابع نه دى ولې چې د پلار نطفه د مور په نطفه كې هلاكيږي او د هلاک شوى اعتبار نه وي، همداشان بچى د مور له طرف څخه كيدل متيقن دى حال داچې د پلار له طرف څخه متيقن نه دى. همداشان له مور څخه له جلاكيدلو وړاندې ماشوم حسا او حكما د مور د نورو اعضاء په شان دى لهذا كوم حكم چې د مور وي هغه به د دې د ماشوم هم وي.

(۱۷) د مينځې هغه اولاد كوم چې د هغې له مالک څخه پيدا شوى وي هغه ازاد دى ولې چې دا ماشوم د مولى له نطفې څخه پيدا شوى دى نو ذى رحم محرم والى په وجه سره ازاديږي، كه څه هم د هغه مور مملوكه وي مګر په دې صورت كې د مور نطفه د پلار د نطفې سره معارضه نه شي كيدلاى ولې چې د مور نطفه د پلار مملوكه ده.

## بَابُ الْعَبْدِ يُعْتِقُ بَعْضَهُ

### دا باب دهغه غلام په بيان کې دی دکوم چې څه حصه ازاده شي

په دي کې هيڅ شک نشته چې ټول غلام آزادول کثيرالوقوع دي او بعض غلام آزادول نادرالوقوع دي او داظاهره ده چې دکثيرالوقوع داحکامومعرفت ته ډير ضرورت وي بنسبت نادرالوقوع ته ،او کوم چې ضرورت ډيروي هغه احق بالتقديم دی په دي وجه مصنف رحمه الله دټول غلام دآزادولوداحکامو بيان مقدم کړی دی د بعض غلام دآزادولو پر احکامو باندي.

(۱)من أعْتَقَ بَعضَ عَبدِهِ ولم يَعْتِقْ كُلُّه ,وَسَعَى له فِيمَابَقِيَ (۲) ,وهو كَالمُكَاتَبِ (۳)وَإن أعْتَقَ نَصِيبَهُ الشَرِيكُ فَلَه أن يُحَرِّرَ أو يَسْتَسْعِيَ,وَالوَلاءُ لَهُمَا أو يُضَمِّنَ لو مُوسِرًا ,وَيَرْجِعُ بِهِ على العَبْدِ,وَالوَلاءُ له

**ترجمه**:کوم چا چې ازاد کړه دخپل غلام بعض حصه نو هغه ټول نه ازاديږي او کټي به ده لره مابقي ،اوهغه دمکاتب په شان دی او که هغه ازاده کړه خپله حصه نو دهغه شريک لره اختيار دی چې هغه ازاد کړي يا کسب پري وکړي او ولاء به دواړولره وي ياضامن جوړکړي که غني وي اودهغه په غلام رجوع وکړي او ولاء به صرف هغه لره وي.

**تشريح**:(۱)که مولی دخپل غلام څه حصه آزادکړه مثلا وي ويل ،ثلثک او نصفک حرّ،(ستاثلث يانصف آزاددی)نودامام صاحب رحمه الله په نزد ټول غلام نه آزاديږي بلکه څومره قدر چې مولی آزادکړی ده هغومره آزاديږي او غلام به دباقې حصه قيمت وګټي مولی ته به يي ورکړي داشان به ټول غلام آزادشي ،دصاحبينو رحمهما الله په نزد که مولی څه حصه آزادکړه بس نوټول غلام آزاديږي ،دصاحبينو رح په نزد اعتاق نه شي تجزی (تقسيم) کيدلای ،ولې چې په غلام کې قوت حکميه (دتصرفاتو کولو قوت) ثابتولو نوم اعتاق دی او قوت حکميه نه شي ټکړي کيدلای نو اعتاق هم نه شي تجزی کيدلای او کوم شئ چې تجزی کيدای نه شي نو دهغه يو حصې يا يو جزء ته منسوب کول داسې دی لکه دکل طرف ته منسوب کول بيانو اعتاق دغلام يوې حصې ته منسوب کول دکل طرف ته منسوب کول دي په دي وجه په دي صورت کې پوره غلام آزاديږي .دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزداعتاق تجزی قبلوي ولې چې اعتاق ازاله ملک ده او ملک تقسيم کيدلای شي لکه په بيع او هبه کې (مثلا نيم غلام خرڅول يا هبه کول صحيح دی)لهذا مولی چې څومره قدر آزادکړی هغو مره آزاديږي.

**ف**:دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دی لمافي الدر المختار :(اعتق بعض عبده)ولو مبهما (صح).........(وقالا)من اعتق بعضه (عتق كله)والصحيح قول الامام لهستاني (الدر المختار على هامش ردالمحتار:۳\۱۶)

(۲)او داسې غلام په احکامو کې دمکاتب په شان دی يعنې دمکاتب په شان داهم دمولی له قبضې څخه آزاديږي او س چې چيرته وغواړي تلای شي ،او دخپلې آزادی دعوض لپاره دي ګټه وکړي په دي وجه چې هغه ټول رقيق دی او دمولی ملک له بعض حصې څخه زائل شوی دی نو ددواړوطرفو په رعايت کولو سره هغه غلام مکاتب ګرځول شوی دی ولې چې مکاتب هم يدامالک وي اورقبه يې مملوکه وي ،دصاحبينو په نزد داسې غلام ټول ازادا ومديون دی ولې چې اعتاق متجزی نه دی لهذاټول غلام ازادشمارل کيږي.

(۳)که غلام ددوو شریکانو په منځ کې مشترک وو له هغوئ څخه یوه خپله حصه آزاده کړه نو آزادونکی به له دوو حالونو څخه خالي نه وي ،مالدار به وي یابه فقیروي ،که مالدار وي نو شریک ته په دروشیانو کې اختیار دی \نمبر۱.که یې خوښه وي نو دخپل شریک په شان دي خپله حصه آزاده کړي ولی چې په باقې حصه کې دده ملک قائم دی .په دي صورت کې به ولاء (میراث چې له آزادکړای شوی غلام څخه یاد عقدموالاة په وجه سره حاصل شي هغه ته ولاء ویل کیږي) ددواړو تر منځ مشترکه وي ولی چې داعتاق صدور له دواړو څخه شوی دی .\نمبر۲،که یې خوښه وي نو په غلام څه دې دخپلې حصي په آندازه کسب وکړي ولی چې دمعتِق مالدار والی له سعایت څخه مانع نه دی ،په دي صورت کې به هم ولاء ددواړو شریکانو په منځ کې مشترکه وي ولې چې دعتق صدورله دواړو څخه شوی دی .\نمبر۳،که یې خوښه وي نوله خپل شریک څخه دې دخپلې حصي دقیمت تاوان واخلې ولی چې هغه دخپلې حصي په آزادولوسره دهغه حصه هم فاسده کړه کړه ولې چې هغه اوس خپله حصه نه هبه کولای شي اونه یې خرڅولای شي ،بیانو معتق چې خپل شریک ته کوم تاوان وکوي دهغه په اندازه به پرغلام رجوع کوي ولی چې کله هغه خپل شریک ته تاوان اداءکړنوهغه دشریک قائم مقام شواوشریک ته دااختیاروچې په غلام کسب وکړي نوازادونکی لره به هم دااختیاروي ،اوولاء به په دي صورت کې صرف معتق لره وي ولی چې اعتاق صرف له ده څخه صادرشوی دی .

**ف**:که آزادونکی فقیر وي نو شریک ته په دوو شیانو کې اختیاردی ،\نمبر۱،که یې خوښه وي نو دی دي هم خپله حصه آزادکړي ولی چې دده ملک باقې دی او که یې خوښه وي نو په غلام دي دخپلې حصي په اندازه گټه وکړي،او په دواړو صورتونوکې به ولاء دواړومشرکه وي.دادامام ابوحنیفه رحمه الله مسلک دی ،دصاحبینو په نزد که معتِق مالداروي نو شریک آخر به صرف له هغه بل څخه ضمان اخلي او که فقیروو نو له غلام څخه به دخپلې حصي په اندازه کسب وکړي اوکټه به اخلي اوبس .

**ف**:دامام ابوحنیفة رحمه الله قول راجح دی لمافی الهندیه :اذاکان العبدبین الشریکین فاعتق احدهما نصیبه عتق فان کان موسرا فشریکه بالخیار ان شاءاعتق وان شاءضمن وان شاءاستسعی العبد(الهندیة: ۲\۹)

(۴)وَلَوْ شَهِدَ كُلٌّ بِعِتْقِ نَصِيبِ صَاحِبِهِ سَعَى لَهُمَا (۵) وَلَوْ عَلَّقَ أَحَدُهُمَا عِتْقَهُ بِفِعْلِ فُلَانٍ غَدًا ,وَعَكَسَ الْآخَرُ وَمَضَى, ولَمْ يَدْرِ عَتَقَ نِصْفُهُ, وَسَعَى فِي نِصْفِهِ لَهُمَا

**ترجمه**:که هریوه شاهدي ورکړه دخپل شریک دحصي دازادولونوغلام به کسب کوي ددواړولپاره ،اوکه معلق کړیوه دغلام ازادي دفلان په فعل پسي په صباورځ کې اوهغه بل ددي عکس وکړاو صباورځ تیره شوه اومعلوم نه شونونیمایي ازادیږي اوکسب به کوي په نیمایې کې دواړولره .

**تشریح**:(۴)که دوو شریکانو هره یوه پرخپل شریک باندي په مشترک غلام کې دآزادي شاهده ورکړه او دوهم دهغه انکار وکړ نو غلام آزادیږي ،دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد باندي به له دوی دواړو څخه دهریوه لپاره به دهغه دحصي په آندازه گټه کوي خواه شریکین مالدار وي او که فقیران وي یا یو مالدار وي بل فقیر وي ولې چې له دوی څه هریوه دخپل شریک په حق کې دغلام دآزادی خبرور کړیده او دخپل ځان په حق کې دغلام دمکاتب کیدو خبرور کړیده بیانو دهریوه قول دخپل ځان په حق کې مقبولیږي مګرددوهم شریک په

حق کې نه مقبولیږي ،لهذا غلام به دهریوه لپاره کټه کوي ،او دولاء دواړه مستحق دي ځکه دهریوه داخیال دی چې زما حصه دمکاتب کیدلو په نتیجه کې آزادیږي .

ف:دصاحبينو رح په نزد که شريک مالداروُنو په غلام باندې ګټه کول واجب نه ده ولې چې دصاحبينو رح له اصولو څخه داده چې شريک که مالداروُ نو پرغلام باندې ګټه کول واجب نه ده بيا نو دهريوه مالدار کيدل غلام له ګټې څه برئ کول دی ،او که شريکين دواړه فقيران وو نو پر غلام باندې ددواړو لپاره ګټه کول واجب ده ځکه دهريوه شريک ګمان دادی چې پر دوهم باندې دفقارت له وجې ضمان نشته بلکه په غلام باندې ګټه واجب ده ،او که يومالدار وو او دوهم فقيروو نو دفقير لپاره ګټه کول کيږي دمالدار لپار ه نه کول کيږي لماعلمت.

(۵)که له دوو شريکانو څخه يوه دهغه غلام آزادي دفلان تر فعل کولو په صباکې معلق کړه مثلا وغلام ته داووايي چې که زيد صبا کورته راغلی نو ته آزاد يې او دوهم بيا دهغه عکس وويل يعنی دايې وويل چې که زيد صبا کورته نه راغلی نو ته آزادیې اوس دصباورځ تيره شوه دزيد راتګ يانه راتګ معلوم نه شو نو په داصورت کې نصف غلام آزاديږي او هغه به دباقي نصف قيمت لپاره به دواړو مالکانو ته ګټه کوي ځکه له دواړه شرطو څخه يو شرط يقيني موجود دی نو نصف غلام په يقين سره آزاديږي او کوم نصف چې آزادشو دهغه لپاره ګټه کول ساقطيږي لهذا دباقي نصف قيمت لپاره به ګټه کوي وخپلو دواړو مالکانو ته به يې اداکوي .

(٦)وَلَوْ حَلَفَ كُلُّ وَاحِدٍ بِعِتْقِ عَبْدِهِ لَمْ يَعْتِقْ وَاحِدٌ (٧)وَمَنْ مَلَكَ ابْنَهُ مَعَ آخَرَ عَتَقَ حَظُّهُ ،وَلَمْ يَضْمَنْ وَلِشَرِيكِهِ أَنْ يُعْتِقَ أَوْ يَسْتَسْعِيَ

**ترجمه** :که هريوه قسم واخيست دغلام دزادي نونه ازاديږي يوهم ،کوم کس چې مالک شودخپل زوی له بل سره نوازاديږي دهغه حصه اوضامن نه دی اوشريک لره اختياردی چې ازادیې کړي ياکسب پري وکړي .

**تشريح**:(٦)که دوو کسانو هريوه دخپل غلام دآزادولو داول صورت په شان قسم واخيست يعنی هريوه دخپل غلام آزادي ددوهم په برعکس شرط پوري معلق کړه مثلا يوه وويل ،که زيد صبا کورته راغلی نو زماغلام حرّدی دوهم بياوويل ،چې که صبا زيد کورته نه راغلی نو زماغلام حرّ دی ،بيا دصباورځ تيره شوه مګردزيد راتګ او نه راتګ معلوم نشو نو دوی دواړو څه ديوه غلام هم نه آزاديږي وجه يې داده چې پر کوم مولی باندې داحکم کول کيږي چې دهغه غلام آزاددی هغه مجهول دی او همداشان کوم غلام چې آزاديږي هغه هم مجهول دی بس دداجهالت له وجې قاضي يوشان حکم نه شئ کولای .(۷)که دوو کسانو په ګډه ديوه زوی واخيست نو دپلار حصه آزاديږي ځکه دخپل ذی رحم محرم دمالک کيدوله وجې مملوک آزاديږي ،اوس ددوهم شريک حصه هم آزاديږي او پلار ددوهم شريک ضامن هم نه کيږي ولې چې دغلام شراء ددواړو په قول سره حاصليږي نو شريک په داآزادي باندې راضی ده ځکه شراء دذی رحم محرم اعتاق دی نو داداسې ده لکه چې يو شريک وبل شريک ته دهغه دحصې دآزادولو اجازت صراحة ورکړي .دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد شريک آخر که خوښه وي نو خپله حصه دې آزادکړي ځکه چې دهغه ملک قائم دی او که ئې خوښه وي له غلام څه دې دګټې غوښتنه وکړي او خپله حصه دوصول کړي له دې وجې چې دپلار له طرفه هيڅ قسم تعدی نده شوي لهذا له غلام څه ګټه اخستل کيږي.

(۸) وان اشتری نصفه اجنبی هم لاب مابقی فله ان یضمن الاب او یستسعی (۹) وَاِنْ اشْتَرٰی نِصْفَ اِبْنِهٖ مِمَّنْ یَمْلِکُ کُلَّهٗ لَا یَضْمَنُ لِبَائِعِهٖ (۱۰) عَبْدٌ لِمُوسِرَیْنِ دَبَّرَهُ وَاحِدٌ، وَحَرَّرَهُ آخَرُ ضَمِنَ السَّاکِتُ الْمُدَبِّرَ، وَالْمُدَبِّرُ الْمُعْتِقَ لِثُلُثِهٖ مُدَبَّرًا لَا مَا ضَمِنَ

**ترجمه**: که واخیسته نصف حصه دغلام اجنبی بیا واخیسته پلار مابقی نو اجنبی ته اختیار دی چې پلار ضامن جوړ کړي یا په غلام کسب وکړي، او که چا واخیست دخپل زوی نصف له داسي کس څخه کوم چې د دي غلام دکل مالک وونو پلار ضامن نه دی بائع لره، یو غلام دی د دوو غنی کسانو مدبر جوړ کړیوه او ازاد کړ دوهم نو ضامن دي جوړ کړي هغه پټه خوله والا مدبر او دمدبر ازادونکی دحالت مدبری د ثلث قیمت نه دهغه قیمت دکوم چې دی ضامن شوی دی.

**تشریح**: (۸) که دغلام نیمی حصه اجنبي واخیسته او بیا وروسته باقي حصه دهغه غلام پلار واخیسته نو اوس واجنبي ته اختیار دی که ئې خوښه وي دخپلې حصې ضمان دې دغلام له پلار څه وصول کړې ځکه پلار دهغه حصه فاسده کړه او دتیرشوې صورت برعکس داپه داافساد باندې راضي هم نه ده، او که ئې خوښه وي نو له غلام څه دې دګټې غوښتنه وکړې ولې چې دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد د معتق غنی کیدل م له غلام څه دګټې غوښتنې کولو مانع نه ده لهذا که پلار غني وې نو هم دغلام څه ګټه غوښتل صحیح ده.

(۹) که پلار دخپل زوی نصف حصه له داسې شخص څه واخیسته چې هغه دده دټول زوی مالک وو ظاهره ده چې پلار دبائع نصف حصه هم ضرور آزاده کړله نو دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد دا پلار دبائع دحصې ضامن نه کیږي ځکه بائع خپله دهغه غلام په آزادی کې له پلار سره شریک دی له دې وجې چې دنصف حصې خرخولو صدور له بائع څخه په خوشې شویده.

(۱۰) یو غلام ددروغنیانو په مینځ کې مشترک وُله دوی څخه یوه خپله حصه مدبر کړی بیا دوهم خپله حصه آزاده کړه او دریم خاموش پاته شو نو دادریم شخص دې له مدبر کونکي څخه دخپلې حصې وصول کړې ولې چې دخاموش په حصه کې دمدبر کونکي له تدبیر څه نقصان راغې لهذا وخاموش ته دخپلې حصې قیمت وصول کولو حق شته او مدبر کونکی به له آزادونکی څخه دغلام مدبر کیدلو په حالت کې یو مناسب قیمت واخلې ځکه تر اوس دمدبر کونکې په غلام کې حق موجود وی دادوهم غلام آزاد کړی دهغه حق یې ورفاسد کړی، او مدبر کونکې به له آزادکونکې څخه هغه قیمت ه اخلې کوم قیمت چې ده وهغه خاموش ملګرې ته بطورضمان ورکړی وو ولې چې آزادکونکې دهغه خالص حصه نه دفاسده کړي لهذا خالص دحصې دقیمت اخستلو حق نه لري، مثلا دغلام قیمت ۲۷ دیناره ده نو ساکت به له مدبر کونکی ملګرې څخه ۹ دیناره واخلې ځکه د۲۷ ثلث ۹ جوړیږي او مدبر به له معتق څخه ۶ دیناره واخلې ځکه دیو غلام له مدبر کیدلو څه دهغه په قیمت کې یو ثلث کم والای راځي نو ګویا دغلام قیمت ۱۸ دیناره دي او د ۱۸ ثلث ۶ دیناره جوړیږي.

(۱۱) وَلَوْ قَالَ لِشَرِیکِهٖ هِیَ أُمُّ وَلَدِکَ، وَأَنْکَرَ تَخْدُمُهُ یَوْمًا، وَتَتَوَقَّفُ یَوْمًا (۱۲) وَمَالِأُمِّ وَلَدٍ تَقَوُّمٌ فَلَا یَضْمَنُ أَحَدُ الشَّرِیکَیْنِ بِإِعْتَاقِهَا

**ترجمه**: که چا خپل شریک ته وویل، دا مینځه ستا ام ولده ده، او هغه انکار وکړ نو مینځه به یوه ورځ دمنکر خدمت کوي او یوه ورځ به موقوف اوسیږي، او دام ولده هیڅ قیمت نشته او ضامن نه دی کوم یو له شریکینو څخه دهغې په ازادولو سره.

**تشريح:** (۱۱) په يوه مينځه كې دوه كسانو شريكان وو يوه آبل ته وويل چې ،دامينځه ستا ام ولده ده ،او هغه انكار كوي ويې ويل چې دازما ام ولده نه ده ،نو دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد به دامينځه يوه ورځ دانكاركولو والا خدمت كوې او يوه ورځ به موقوف اوسيږي ولې چې داقرار كولو والاكه په خپل اقراركې صادق وې نو دمنكر لپاره پر مينځه پوره خدمت كول واجبيږي او كه مقردرواغجن وو نو دمنكر لپاره نصف خدمت واجبيږي ځكه چې مينځه ددواړو مشتركه ده بيانو نصف خدمت چونكې يقيني دمنكرلپاره ثابتيږي او دمقرلپاره هيڅ خدمت په مينځه باندې نشته لهذا مينځه به يوه ورځ دمنكرخدمت كوې او يوه ورځ به دهيچاخدمت نه كوې .

(۱۲) دام ولدې قميت نشته ولې چې قيمت دهغه شئ واجبيږي چې دمالدارې لپاره په خپله قبضه كې محفوظيږي حالانكه ام ولده صرف دنسب لپاره پاته كيږي دمالداري لپاره نه وې ،بيا كه دمشتركې مينځې بچي پيداشو او دواړو مالكانو دبچي دعوه وكړه نو مينځه ددواړو ام ولده كيږي اوس كه له دوى دوو ځخه يوه خپله حصه آزادكړه نو دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد داددوهم دحصې ضامن نه كيږي ولې چې دام ولده ماليت متقوم نه دى .

(۱۳) لهاَعْبُدٌ قَالَ لِاثْنَيْنِ اَحَدُكُمَا حُرٌّ فَخَرَجَ وَاحِدٌ ,وَدَخَلَ آخَرُ ,وَكَرَّرَ ,وَمَاتَ بِلَابَيَانٍ عَتَقَ ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِ الثَّابِتِ ,وَنِصْفُ كُلٍّ مِنَ الْآخَرَيْنِ (۱۴) وَلَوْ فِي الْمَرَضِ قُسِمَ الثُّلُثُ عَلَى هَذَا

**ترجمه :** دچادري غلامان دي هغه دووته وويل له تاسي ځخه يوازاددى نويووتى اودريم راغى مالك ياهغه خبره تكراركړه اومالك مړشوله بيان كولوځخه وړاندي نوازاديږي دري ربعي دواړه ځله دثابت پاتي شوي والا ،اودهريوه نصف ازاديږي له باقى دووځخه ،اوكه داصورت په مرض الموت كې وي نوتقسيميږي به ثلث تركه په مذكوره طريقه باندي .

**تشريح:** (۱۳) ديوه سړي دري غلام وو هغه له دوى ځخه ۲مخاطب كړل ورته ويې ويل چې ،له تاسو ځه يوآزاددى ،اوس له هغو ۲ځه يو له دې ځاى ولاړى او دريم راغلې كوم چې دمالك دداخطاب په وخت كې نه وو اوس مالك بيا ودوى ۲ته همداشان وويل چې ،له تاسو ۲ځه يوآزاددى ،او دايې وويل مالك مړشو او دابيان ئې نه وكړى چې زماپه نزد له غلامانو ځه كوم يو آزاددى نو په داصورت كې دري ربع دهغه غلام دآزاديږي كوم يو چې په دواړو دفعه كې ناست وو او دباقې ۲ نصف نصف آزاديږي ولې چې د مالك له اول قول ځخه دموجود غلامانو ځه هريو دنصف حصې آزادولو حق داره دي لهذا نصف حصه دموجود دآزاده شوه او نصف حصه دتلونكي دآزادشوه او دوهم ځل هم هرغلام دنصف حصه آزادولوحق داره دى اودادويم وارازادي چې ده دابه دموجودغلام پركل باندي تقسيميږي نودنصف نصف يعنى يوه ربع به دده دازادي حصې په مقابله كې راځي لهذا هغه باطل دى ولې چې دازادي حصې دازادولو ځه معنى نشته اودباقي نصف نصف يعنى دوهمه ربع دده دغلامي حصې په مقابله كې راځي په دې دول دده نيمايې حصه لومړى ځل اويوه ربع دوهم ځل ازاديږي اودنصف اوربع مجموعه دري ځلورميې دي اودپاتي دووبه نيمايې نيمايې ازاديږي .

(۱۴)او که مذکوره بالاصورتونه په مرض الموت کې ومالک ته راغلل بیا تر بیان کولو مخکې مړشو او دمیت ټوله ترکه دادرې غلامان دي او ورثه تر ثلث تر که زیٔدا جازت نه ورکوي نو دټولې ترکې ثلث به په مذکوره بالا حساب پر غلامانو تقسیمیږي ځکه داپه منزله دوصیت ده او داقاعده ده چې وصیت دترکې په ثلث کې جار کیږي لهذا دثلث ترکې څه دغلام درې ربع ثابتیږي او نصف نصف دخارج او داخل لپاره دي ،او ثلث ترکه به ۷حصې کړې له ۷حصوڅه به ۳حصې هغه په دوړاه واره ویلو کې چې موجود غلام ؤهغه آزادکړل شي او په دوو دوو حصیو به باقي دوه آزادکړل شي .

(۱۵)وَالْبَيْعُ وَالْمَوْتُ وَالتَّحْرِيرُ وَالتَّدْبِيرُ بَيَانٌ فِي الْعِتْقِ الْمُبْهَمِ(۱۶)لَا الْوَطْءُ(۱۷)وَهُوَ وَالْمَوْتُ بَيَانٌ فِي الطَّلَاقِ الْمُبْهَمِ

**ترجمه**:او بیع ،موت،آزادول ،او مدبرکول او هبه کول په عتق مبهم کې بیا ن دي ،او وطئ کول بیان نه دی ،او وطئ کول او موت په بیان دی په طلاق مبهم کې .

**تشریح**:(۱۵)غلام خرڅول ،غلام مړکیدل ،آزادول ،مدبر او هبه کول په عتق مبهم کې بیان دی مثلاکه دیو سړي دوه غلامان وو هغه ودوی دوو ته خطاب وکړ ویې ویل چې ،له تاسو څخه یو آزاد دی .نو داآزادول مبهم دي اوس هغه په خپله له هغو څخه یو خرڅ کړیا یې آزادکړ یایې چاته هبه کړ یایومړشو نو اوس داپاتې دوهم یوآزادیږي او د دي افعالو په وجه سره دامعلومیږي چې هغه په هغه وخت کې داپاتې یو آزادکړی وو ولی چې دمالک له اول کلام څخه په دواړو کې عتق متردد ثابت شو ،اوهغه دواړه په دي کې سره برابردي بیا چې یې له دواړوڅخه یو خرڅ کړیایې آزادکړ یامړشو یایې مدبرکړ یایې چاته هبه کړ نو دوهم بلاتعیین دعتق لپاره متعین کیږي ولی چې اوس دهغه کوم مزاحم نشته .

(۱۶)قوله لاالوطی ای لیس الوطی بیان فی العتق المبهم ،یعنی وطی کول په عتق مبهم کې بیان نه دی مثلا که مالک خپلو دوو منیځوته وویل چې ،له تاسودواړو څخه یوه آزاده ده ،بیایې له یوي سره وطی وکړه دادادي امردلیل نه دی چې دوهمه مینځه نو آزاده ده ولې چې په دواړو کې ملک باقي دی په دي وجه عتق مبهم معلق بالبیان کیږي او معلق بالشرط دشرط له وجود څخه وړاندي نه واقع کیږي داوجه ده چې مالک له دوئ دواړ څخه دخدمت اخیستلوحق لري،او له مینځې سره وطی کول له قبیل داستخدام دی ولی چې له مینځې سره وطی کول [illegible] قضاء شهوت لپاره کیږي او دتوالدلپاره نه وي لهذا نو دیوې له وطی کولو څخه دهغې باقي کیدل او دوهمه آزاده ل نه [illegible] .

(۱۷)البتة وطی کول [illegible] مبهم کې بیان دی (په دې شرط چې طلاق بائن وي )مثلا دیوسړي دوې ښځې وي هغه ودوی دواړو ته وویل ،له تاسو څه یوه طلاق ده ،بیا یې له دوی څخه دیوې سره وطی وکړه نو طلاق په دوهمه باندې واقع کیږي ځکه په نکاح کې له وطی کولو څه مقصود ولد کیږي بیا نو په دا صورت کې دولد قصد کول صیانت ولد لپاره په موطؤة کې استبقاء ملک دلیل دی لهذا طلاق مبهم پر دوهمه ښځه باندې واقع کیږي ،همداشان مړکیدل هم په طلاق مبهم کې بیان بلل کیږي مثلا په مذکوره صورت کې له دوی دوو څه یوه مړه شوه نو هم طلاق په دوهمه باندې واقع کیږي ځکه مړه شوې ښځه محل طلاق نه کیدلو له وجې په خپله دوهمه ښځه دطلاق لپاره متعین کیږي .

(۱۸) وَلَوْ قَالَ إِنْ كَانَ أَوَّلُ وَلَدٍ تَلِدِينَهُ ذَكَرًا فَأَنْتِ حُرَّةٌ فَوَلَدَتْ ذَكَرًا وَأُنْثَى، وَلَمْ يُدْرَ الْأَوَّلُ رَقَّ الذَّكَرُ وَعَتَقَ نِصْفُ الْأُمِّ وَالْأُنْثَى (۱۹) وَلَوْ شَهِدَا أَنَّهُ حَرَّرَ أَحَدَ عَبْدَيْهِ أَوْ أَمَتَيْهِ لَغَتْ (۲۰) إِلَّا أَنْ تَكُونَ فِي وَصِيَّةٍ أَوْ طَلَاقٍ مُبْهَمٍ

**ترجمه**: او که یې وویل، اول بچی کوم چې ته یې وزېږوې که مذکر وو نو ته آزاده یې، بیا دې هلک او انجلۍ دواړه وزېږول خو اول معلوم نه وو نو هلک غلام دی او نصف دمور او انجلۍ آزادیږي، که دوو کسانو شاهدي ورکړه چې هغه له دوو غلامانو څخه یو غلام یا له دوو مینځو څخه یوه مینځه آزاد کړې ده نو داشاهدي لغوه ده، مګر که داپه وصیت یا طلاق مبهم کې وو.

**تشریح**: (۱۸) که یو مالک خپلې مینځې ته وویل چې، کوم بچی چې ته اول وزېږوې که هغه هلک وو نو ته آزاده یې، بیا هغې هلک او انجلۍ دواړه وزېږول او دا معلومه نه شوه چې له دوئ څه اول کوم یو پیداشو نو داهلک غلام دی او دانجلۍ او دهغې دمور دهرې یوې نصف آزادیږي ولې چې که اول هلک پیداشوی وي نو دشرط دموجودیدلو له وجې مور آزادیږي او دهغې په اتباع کې لور هم آزادیږي ځکه مور دانجلۍ تر پیدا ینبت مخکې آزادشوې وه او که انجلۍ اول پیداشوې وه نو دشرط دنه موجودیدلو له وجې مور او انجلۍ دواړې مینځې اوسیږي ددواړوحالتونو رعایت کول کیږي دهریوېد نصف نصف دآزادی حکم ورکړل شو، او هلک په دواړه صورتو کې غلام دی دانجلۍ اول پیداکیدو په صورت کې ظاهره ده او دهلک په اول پیداکیدو په صورت کې بیا له دې وجې نه آزادیږي چې دانجلۍ پیدا ینبت دمور دآزادی لپاره شرط دی او شرط تر مشروط مقدم کیږي لهذا مور دانجلۍ تر پیدا ینبت وروسته آزادیږي له دې وجې هلک دمور تابع نه کیږي.

(۱۹) که دوو کسانو په شخص باندې شاهدي ورکړه چې، هغه دخپلو دوو غلامانو څه یو آزاد کړی دی یا دخپلو دوو مینځو څه یوه آزاده کړې ده، نو دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد په دواړو صورتو کې شاهدي لغو کیږي په اول صورت کې له دې وجې چې دغلام دآزادی شاهدي دغلام له طرف څه ددعوی کولو بغیر مقبوله نه ده نو چې کله دلته دعوی او مدعی دواړه نشته ځکه له غلامانو څه یو مبهم آزاددی له دې وجې څخه له دوی څه یو هم مدعی نه شي جوړیدلای نو چې مدعی نه وي دعوی بیاسنګه کیدلاشي، او په دوهم صورت کې دمینځې په حق کې که څه هم دعوی شرط نه ده لیکن پر عتق مبهم باندې شاهدي ورکول مردود ده له دې وجې په دوهم صورت کې هم شاهدي لغوه ده.

(۲۰) البته که شاهدي په وصیت کې وه مثلا دوو کسانو شاهدي ورکړه چې فلان شخص په مرض الموت کې دخپلو غلامانو څه یو آزاد کړی نو داشاهدي بالاتفاق قبوله ده ځکه په مرض الموت کې اعتاق وصیت دی او خصم یعنی دموصي خلیفه وصي یا وراث موجود دی لهذا دعوه دخلیفه له طرفه څه ثابت شوه او پر دعوی باندې دشاهدۍ مدار دی لهذا داګواهي معتبره ده، همداشان که شاهدي په طلاق مبهم کې وه مثلا دوو شاهدان وویل چې، فلان شخص له خپلو دوو ښځو څه یوې ته طلاق ورکړی ده، نو داشاهدي مقبوله ده ځکه په طلاق کې تحریم فرج دی هغه دشریعت حق دی او په هغې کې دعوی شرط نه ده لهذا په طلاق مبهم کې ګواهي معتبر کیږي.

## بَابُ الْحَلِفِ بِالدُّخُولِ

دا باب دقسم اخستلو په دخول سره په بيان کې دی

دلته په آزدولو باندې قسم کولو څه مراد دغلام آزادې په يو شرط پورې معلق کول دی .

مصنف رحمه الله دتنجيزې عتق له مسائلو څخه فارغ شو اوس يې دتعليقې عتق مسائل شروع کړي ځکه تعليق تر تنجيز وروسته وي .

(۱) وَمَن قَالَ إِن دَخَلتُ الدَّارَ فَكُلُّ مَملُوكٍ لِي يَومَئِذٍ حُرٌّ عَتَقَ مَا يَملِكُ بَعدَهُ بِهِ (۲) وَلَو لَم يَقُل يَومَئِذٍ لَا (۳) وَالمَملُوكُ لَا يَتَنَاوَلُ الحَملَ

**ترجمه**: که يو چاوويل ،چې که زه کورته داخل شوم نو زماچې څومره مملوک دي په داورځ هغه آزاددي ،آزاديږي دکوم چاچې هغه مالک شئ له داوروسته دداشرط له وجې ،او که يې لفظ يومئذ نه وو ايو بيانه آزاديږي ،او مملوک وحمل ته نه شامليږي .

**تشريح**:(۱)که يو شخص داوويل چې ،که زه کورته داخل شوم نو په داورځ کې چې زماڅومره مملوک وو هغه ټول آزاددي ،نو له داويلو وروسته چې څومره غلامان دده په ملک راشي دده وکورته دداخليدلو له وجې هغه ټول آزاديږي ولې چې دقائل په داقول کې ،يومئذ،په معنی د،يو م اذادخلت الدار،ده بيا،دخلت الدار،حذف شو دهغې په عوض کې تنوين راوړی لهذا ددخول دار په وخت کې قيام ملک معتبر دی بيا نو ددخول دار په وخت کې چې دڅومره غلامانو مالک شي هغه ټول آزاديږي .

(۲)قوله ولو لم يقل يومئذ لا اي لو لم يقل يومئذ لا يعتق من ملكه بعد اليمين .يعنی که قائل لفظ ،يومئذ ،نه وو ايو بلکه داسې وويل ،ان دخلت الدار فکل مملوک لی حرّ،نو په داوخت کې چې دکوم چا مالک دی هغه آزاديږي او دکوم چاچې له داويلو وروسته دی مالک شي هغه نه آزاديږی ځکه داجمله دفی الحال وقوع الحريت لپاره ده البة تر شرط معلق کيدو له وجې څه داآزادې تر وقوع الشرط پورې مؤخر کيږي لهذا وجود الشرط په وخت کې دهغه په ملک کې چې کوم غلام دی هغه آزاديږي ،او که ديمين په وخت کې دهغه په ملک يو غلام نه وو نو يمين لغو کيږي .

(۳)او دمملوک لفظ حمل ته نه شامليږي ځکه لفظ مملو ک مطلق غلام ته شامليږي او حمل مطلق نه دی بلکه دمور تابع دی لهذا حمل تر مطلق مملوک لاندې داخل نه دی ،بيا که يو چاوويل زماچې څومره مذکر مملوک دی هغه آزاددي ،او دهغه يوه مينځه حامله وه بيا هغې د ۶ مياشتو دننه هلک وزيږوی داهلک نه آزاديږي .

(۴) كُلُّ مَملُوكٍ لِي أَو أَملِكُهُ حُرٌّ بَعدَ غَدٍ أَو بَعدَ مَوتِي يَتَنَاوَلُ مَن مَلَكَهُ مُنذُ حَلَفَ فَقَط (۵) وَبِمَوتِهِ عَتَقَ مَن مَلَكَ بَعدَهُ مِن ثُلُثِهِ أَيضًا

**ترجمه**:زماټول مملوک يا دکوم چا چې زه مالک شم هغه آزاددی تر صبا وروسته او يا زماتر مرګ وروسته نو داصرف وهغه غلام ته شامليږي دکوم چا چې هغه دحلف په وخت کې مالک وو ،او دهغه له مرګ وروسته هغه غلام هم آزاديږي دکوم چې دی له شرط وروسته مالک شوی وې دهغه دتر کې له ثلث څه (آزاديږي).

**تشريح**:(۴)که يو چا وويل چې،زماچې څومره مملوک دی هغه له سباورځې وروسته آزاددي يا زماتر مرګ وروسته آزاددي ،نو دده داقول فقط وهغه غلام ته شامليږي دکوم چا چې داشخص دقسم اخستلو په وخت کې مالک وې ځکه په ،کل مملوک لی ،کې جاراومجرور تر،ثابت ،پورې متعلق دی او ،ثابت،اسم فاعل دی او اسم فاعل دمذهب مختار مطابق دحال لپاره وضع دی نه داستقبال لپاره ،همداشان که يې وويل

دكوم چاچې زه مالک شم هغه له سبا وروسته آزاددي يازما تر مرګ وروسته آزاددي ،نو هم صرف هغه غلام آزادېږي دكوم چاچې دا شخص دقسم اخستلو په وخت كې مالک دی ځکه ،کلّ مملوک املکه ،دفی الحال لپاره استعمالیږي له دې وجې چې لفظ ،املکه ،فعل مضارع ده او هغه دحال لپاره بلاقرينه او داستقبال لپاره په قرينه دسين ياسوف استعماليږي لهذا له داقسم وروسته چې ده كوم څوک واخيست وهغه ته داقول شامل نه دی.

(۵)او دمالک دمرګ په صورت کې هغه غلام آزادیږي دکوم چاچې هغه فی الحال مالک دی لامر،همداشان دطرفينو رح په نزد هغه غلام هم له ثلث مال څه آزادیږي دکوم چې هغه له شرط وروسته مالک شوی دی ولې چې داايجاب عتق په طريقه دوصيت دی داوجه ده چې له ثلث مال څه آزادیږي او په وصيت کې دموت حالت مقصود یږي لهذا داوهغه ته هم شامليږي دکوم چاچې په وخت دموت کې مالکیږي ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزد دکوم غلام چې ديمين نه وروسته مالک شي هغه نه آزاديږي ځکه دالفظ حقيقة دحال لپاره دی کمامرّ.

## بَابُ الْعِتْقِ عَلَى جُعْلٍ

دادمال په عوض کې آزادولو په بيان کې دی

جعل بضم الجيم ديو عمل وأجرت ته ويل كيږي دلته دعتق عوض مراد دی ،دمال په عوض کې آزادول دتعليق په معنی کې دی په دې وجه مصنف رحمه الله ،باب العتق على جعل ،پر باب تعليق باندې مرتب کړی.

(۱)حَرَّرَ عَبْدَهُ عَلَى مَالٍ فَقَبِلَ عَتَقَ (۲) وَلَوْ عَلَّقَ عِتْقَهُ بِأَدَائِهِ صَارَ مَأْذُونًا وَعَتَقَ بِالتَّخْلِيَةِ (۳) وَإِنْ قَالَ أَنْتَ حُرٌّ بَعْدَ مَوْتِي بِأَلْفٍ فَالْقَبُولُ بَعْدَ مَوْتِهِ (۴) وَلَوْ حَرَّرَهُ عَلَى خِدْمَتِهِ سَنَةً فَقَبِلَ عَتَقَ وَخَدَمَهُ (۵) فَلَوْ مَاتَ تَجِبُ قِيمَتُهُ

**ترجمه**:كه ئې خپل غلام په مال سره آزادی کړی غلام قبول کړی نو آزادیږي ،او که ئې دهغه آزادي دمال په ادائګې باندې معلق کړه نو مأذون ګرزيږي او دمال له حاضرولو څه آزادیږي ،او که ئې وويل ته زماله مرګ وروسته د(۱۰۰۰) روپو په عوض کې آزاد يي ،نو قبلول له مرګ وروسته معتبريږي او که يې غلام ديو کال خدمت کولو په عوض کې آزاد کړی بيا هغه قبول کړه نو آزاديږي او دهغه خدمت به کوي ،او که مالک مړشو نو دغلام قيمت واجب دی.

**تشريح**:(۱)كه يوچا خپل غلام دمال په عوض کې آزاد کړی مثلا غلام ته يي وويل ،انت حرّ على الف درهم او بالف درهم ،او غلام په دامجلس کې قبول کړه نو داصحيح دی،او غلام فی الحال آزادیږي ځکه داعوض المال بغير المال دی او دمعاوضه والا په معامله کې محض دعوض قبلولو څه حکم ثابتيږي لهذا غلام فی الحال آزاديږي ،او مال مشروط دغلام په ذمه دين کيږي ځکه غلام خپله دهغه التزام کړی دی .(۲)كه يي دغلام آزادي دمال تر اداکولو معلق کړه مثلا وويل،ان اديت الیّ الفا فانت حرّ،(كه تاماته (۱۰۰۰)روپی راکړې نو ته آزاديي )نو داتعلق صحي دی او غلام مأذون فی التجارة ګرزيږي ځکه دمال اداکيدل بغير کسب او تجارة نه شي کيدلای لهذا دادلالة اذن دی ،اوس داغلام صرف په تخليه سره آزاديږي له تخليه څه

مراد دادی چې غلام دخپل مالک په مخکې مال داسې واخلې لکه هغه چې دمالک لپاره اخلې مال دمالک په لاس کې ورکول ضروري نه ده ،که غلام مال مشروط حاضر کړی نو حاکم به مولی دمال پر اخستلو مجبورکوي او غلام آزادیږي.

(۳)که مولی وخپل غلام ته وویل چې ،ته زماله مرګ وروسته (۱۰۰۰)دروپوپه عوض کې آزادیې ،نو دغلام له طرف څخه دهغه خبره منظورول دمولی له مرګ وروسته معتبریږي ځکه مولی دایجاب اضافت ومابعد الموت ته کړی دی او قبول ترایجاب مخکې معتبرنه دی دانو داسې شولکه یو څوک چې وخپلې ښځې ته ووایي ،انت طالق غدا ان شئت ،ترصباراتللو مخکې دښځې مشیت نشته.

(۴)که یوچا غلام دیوکال خدمت کولو په عوض کې آزادکړی مثلا وغلام ته یې وویل ،دیوکال خدمت کولو په عوض ما تهآزادکړی یې ،او هغه قبول کړه نو غلام آزادیږي ځکه مولی دمعلوم خدمت په عوض کې دهغه دآزادی حکم کړی دی لهذا آزادي پر خدمت قبلولو باندې معلق ده بیا نو چې کله هغه قبول کړه نو آزادیږي ،اوس به غلام یوکال دمولی خدمت کوي ځکه غلام مبدل مل ګیا .او دهغه په ذمه بدل واجبیږي او دخدمت عوض جوړل هم کیږي.

(۵)که مولی تر یوکال خدمت کولو مخکې مړشو نو په هغه غلام باندې دخپل ځان قیمت ورکول واجب دی ځکه خدمت منفعت دی او په منفعت کې وراثت نه چلیږي نو عین منفعت دمولی تر مرګ وروسته باقې پاته کیدل ممکن نه دی لهذا قیمت واجبیږي.

**الغاز**:ای عبدعلّق علی شرط ووجد ،ولم یعتق؟

**فقل**:اذاقال له ،ان صلیت رکعة فانت حر فصلاها ثم تکلم ،ولوصلی رکعتین عتق ،فالرکعة لابد من ضم اخری الیها لتکون جائزة.(الاشباه والنظائر)

(٦) وَلَوْ قَالَ أَعْتِقْهَا بِأَلْفٍ عَلَى أَنْ تُزَوِّجَنِيهَا فَفَعَلَ فَأَبَتْ أَنْ تَتَزَوَّجَهُ عَتَقَتْ مَجَّانًا (٧) وَلَوْ زَادَ عَنِّي قُسِّمَ الْأَلْفُ عَلَى قِيمَتِهَا وَمَهْرِ مِثْلِهَا وَيَجِبُ مَا أَصَابَ الْقِيمَةَ فَقَطْ

**ترجمه**:که مولی وبل چاته وویل دامینځه د(۱۰۰۰)روپو په عوض کې آزاده کړه په دې شرط چې هغه به زماسره نکاح کوي بیا مالک آزاده کړه او مینځې له هغه دنکاح کولو څه انکار وکړی نو مفت آزادیږي ،او که یې لفظ دعنّي ،زیات کړی نو بیا زرروپۍ دمینځ په قیمت او مهرمثل باندې تقسیمږي او صرف هغه واجبیږي کوم چې ددې دقیمت مقابل وي.

**تشریح**:(۶)که یوچا دمینځې ومالک ته وویل ،چې ته دامینځه د(۱۰۰۰)روپو په عوض کې په دې شرط چې هغه به زماسره نکاح کوي آزاده کړه ،بیامالک دهغه دویلو پربناء باندې خپله مینځه آزاده کړه اوس هغه وخپلې مینځې ته وویل چې زه ستانکاح له داشخص سره کوم مینځې له هغه سره دنکاح کولو څه انکار وکړی نو دامینځه دمالک له طرف څخه مفته آزادیږي او په عتق سره امرکونکې باندې هیڅ شئ نه واجبیږي ځکه دیواجنبی په بدل شرط باندې طلاق کول جائزدی عتاق جائزنه دی لهذا پرآمر باندې هیڅ شئ نه لازمیږي.

(۷)که یو اجنبي شخص وویل چې د(۱۰۰۰)روپو په عوض کې زما له طرف دامینځه آزاده کړه یعنی د لفظ،عنّی ، اضافه یې وکړه باقي مضمون یې دپورته والابیان کړی نو اوس دازرروپۍ ددغې مینځې په قیمت او دهغې په مهر مثل باندې تقسیمېږي کوم چې دقیمت په مقابل کې راشي هغه پر دااجنبي باندې واجبیږي ولې چې کله هغه ،عنّی ،ووایو نو داقول اقتضاء شرط ته متضمن دی ګویا آمر وهغه ته وویل ،بع امتک بالف درهم هم کن وکیلی عنی الاعتاق علی ان تتزوج منی ،بیانو دا(۱۰۰۰)روپۍ دشراء اونکاح له وجې دهغې درقبې او بضع په مقابل کې دي ،نو اوس چې کوم شئ هغه ته جواله کړی یعنی رقبه دهغه حصه پر داشخص باندې واجب ده او کومه حصه چې یې وهغه ته نه دحواله کړې یعنی بضع نو دهغې حصې په مقابل کې چې کوم حصه ده هغه باطلیږي.

## بَابُ التَّدْبِيرِ

### داباب دتدبیر په بیان کې دی

تدبیرلغة دیو امر دانجام پوره کیدلو ته ویل کیږي ،او شرعاً دغلام آزادي تر خپل مرګ پورې معلق کولو ته ویل کیږي.

له ماقبل سره یې مناسبت دادی چې ،تدبیر،اعتاق مقید بمابعدالموت دی،او مقید په منزله دمرکب کیږي او مرکب تر مفرد وروسته وي له دې وجې له مطلق اعتاق وروسته مقید بمابعدالموت ذکروکړی.تر استلاد یې له دې وجې مقدم ذکر کړی چې ،تدبیر،مذکر او مؤنث دواړو ته شامل دی او استیلاد دمؤنث سره خاص دی.

(۱)هو تعليق العتق بمطلق موته (۲) كإذا مت فأنت حر أو أنت حر يوم أموت أو عن دبر مني أو مدبر أو دبرتك فلا يباع ولا يوهب (۳) ويستخدم ويؤجر وتوطأ وتنكح (۴) ويعتق من ثلثه (۵) وسعى في ثلثيه لو فقيرا (۶) وكله لو مدينا

**ترجمه** :هغه آزادي معلق کول ده تر خپل مطلق مرګ پورې ،مثلاً داسې ووایي چې کله زه مړشم نو ته آزادیې یا ته آزادیې په کومه ورځ چې مړشم ،یازما وروسته ،یا ته مدبریې یا ماته مدبر کړې بیانو هغه نه خرڅیږي او نه هبه کیږي ،البته له هغه څه خدمت اخستل کیدای شي و په مزدورۍ باندې ورکول کیږي (که مینځه وه )وطئ ورسره کیداشي او نکاح ورسره کیداشي ،او دمولی له مرګ څه دهغه له ثلث ترکه څه آزادیږي ،او کټه به کوي په دوه ثلث کې که مالک فقیر وو ،او په ټول کې به کټه کوي که مالک مقروض وو.

**تشریح** :(۱)مصنف رحمه الله دتدبیرتعریف کوي چې دغلام یامینځې آزادي فقط ترخپل مرګ پورې معلق کولو ته په شریعت کې تدبیرویل کیږي.دموت مطلق ویلوسره له موت مقید څه احترازدی ولې چې په موت مقید سره معلق کول تعلیق بالشرط دی تدبیرنه دی ، موت مقید دادی چې یو څوک داسې ووایي چې ،که زه له دامرض څه مړشوم یا په داسفرکې مړشوم نو ته آزادیې.

(۲)قوله کاذامت فانت حر ای کقول المولی لعبده اذامت فانت حر .یعنی دتدبیر الفاظ دادي مثلا مولی وخپل غلام ته ووایي ،چې کله زه مړشم نو ته آزاد یې ،یاووایي ،ته آزادیې په کومه ورځ کې چې زه مړشم ،یاووایي ،ته

ترماوروسته آزاديې ،ياووايې ،ته مدبر يې ،ياووايې ،ماته مدبر كړې ،نو په دغوټولوصورتوكې غلام مدبركيږي ځكه داالفاظ په تدبيركې صريح دي نيت ته محتاج نه دي ،بيانو چې كله غلام مدبرشو نو اوس هغه نه خرڅيږي او نه هغه هبه كيږي يعنې اوس هغه ويوچا ته تمليكا وركول جائزنه دى ،لماروىابن عمر أن النبي صلى الله عليه وسلم قال { إن المدبر لا يباع ولا يوهب ولا يورث وهو حر من الثلث .همداشان مروي دى چې حضرت عمر رضي الله عنه دصحابه كرامو رضي الله عنهم په موجودګۍ كې دمدبربيع ردكړې وه بيانو دادهغه له طرف دمدبربه عدم جوازبيع اجماع ده ،البته ترمرګ مخكې هغه آزاديدلاى شي .

(۳)كه يوچا خپل غلام مدبرجوړكړى نو اوس مولى له څه خدمت اخستلاى شي او ويوچا ته يې په اجرت وركولاى شي او كه مدبره وينځه وي له هغه سره وطئ كيدلاى شي او جبرا هغه ويوچا ته په نكاح وركولاى شي ځكه دمولى ملك قائم دى او دملك دبقاء له وجې څه مولى ته ددغو تصرفاتو ولايت حاصل دى.

(۴)مولى خپل غلام مدبر كړى وو او اوس مولى انتقال وكړى ،يعنې مړشو ،نو مدبردمولى له ثلث مال څه آزاديږي ولې چې دحديث بالاپه آخركې وو ،وهو حرّ من الثلث ،(هغه آزديږي له ثلث څه )همداشان تدبيرپه اصل كې دوصيت په حكم كې رازي له دې وجې چې تدبير تبرع مضاف الى الموت ده او دوصيت وقوع له مرګ وروسته كيږي او وروسته له مرګ واقع كيدلو له وجې څه له ثلث مال څه آزاديږي

(۵)كه مولى فقيروو نو مدبر به دخپل قيمت دوه ثلث په آندازه ګټه وورثه وو ته وركوي يعنې دمولى تركه له مدبرڅه سوا بل مال نه ؤ نو په داسې صورت كې دمدبر آزادي في الحال ده ليكن مدبر به دخپل قيمت دوې حصې د ورثه ؤلپاره ګټي ځكه دمدبرآزادي دمولى دې تركه له ثلث څه كيږي لهذا دمدبر يوثلث دمولى له تركه څه آزاديږي په باقې دوه ثلث كې به دورثه ؤلپاره مزدوري كوي .

(۶)كه مولى مقروض وو نو مدبر به خپل ټول قيمت ګټي ورثه ؤته به يې وركوي يعنې كه دمولى په تركه كې صرف مدبروو او پر دې زيات پر مولى باندې قرضه هم وه او قرضه هم دومره وه چې دمدبر له قيمت سره برابر يازياته وه نو اوس به مدبر خپل ټول قيمت ګټي او ورثه ؤ ته به يې وركوي ولې چې قرضه تر وصيت مقدمه ده او دمدبر عتق ماتول ممكن نه دى لهذا دمدبر قيمت به قرضخواهانو ته وركول كيږي .

(۷) وبِيعَ لو قال إن مت من سفري أو مرضي أو إلى عشر سنين أو عشرين سنة أو أنت حر بعد موت فلان (۸) وعتق إن وجد الشرط

**ترجمه** :او خرڅول كيږي كه مالک داسې ويلې وو ،كه زه له دامرض څه مړشوم يا په داسفر كې مړشوم يا تر لسو كالو پورې نو ته آزادېې يا ته دفلانې له مرګ وروسته آزاديې ،كه شرط موجود شو نو آزاديږي .

**تشريح** :(۷)كه مولى وخپل غلام ته داسې وويل ،كه زه په دا مرضې كې مړشوم يازه په داسفر كې مړشوم يا په لس كاله كې دننه زه مړشوم .يائې وويل چې ،دفلان شخص له مرګ وروسته ته آزاديې .نو دداغلام خرڅول جائز دي ځكه دموت په داصفت باندې واقع كيدل يقيني نه ده بيانو سبب دآزادى في الحال نه منعقد كيږي او چې كله سبب منعقد نه شو نو دادنورو تعليقاتو په شان معلق كيږي او په هغه كې تصرف نه ممنوع كول كيږي له دې وجې څه دهغه بيع ،هبه وغيره جائزدي ،وداقسم مدبرته مدبرمقيد ويل كيږي تر دامخكې چې دكوم مدبر بيان وو هغه مدبر مطلق ؤ په دغو دواړو قسموكې فرق دادى چې د مدبر مطلق

خرڅول جائز نه دی لماروینا ،حالانکه دمدبر مقید خرڅول جائز دی له دې وجې چې فی الحال داغلام مدبر نه دی.

(۸)که مذکوره بالاصورتوکې شرط موجود شو یعنی مولی په هغه صفت کوم چې ده ذکرکړی وو مړشونو دمدبر مطلق په شان داهم مدبر هم آزادیږي ولې چې دژندګی په آخرې لمحه کې صفت مذکوره متعین شو ترددختم شو نوداد مدبر مطلق په شان کیږي.

## بَابُ الْاِسْتِيلَادِ

داباب داستیلاد په بیان کې دی

داستیلاد لغوې معنی دبچې طلب کول دی خواه له مینځې او که له منکوحې څه وی ،او شرعاً مولی له مینځې څه دوطئ په ذریعه دبچې طلب کولو ته ویل کیږي.له ماقبل سره مناسبت دادی چې مدبر او ام ولده هر یوه ته حق حریت حاصل دی مګر فی الحال حریت ویوه ته حاصل نه دی ددامناسبت له وجې مصنف رحمه الله دتدبیر وروسته داستیلاد ذکروکړی..

(۱) وَلَدَتْ أَمَةٌ مِنَ السَّيِّدِ لَمْ تُمْلَكْ (۲) وَتُوطَأُ وَتُسْتَخْدَمُ وَتُؤَجَّرُ وَتُزَوَّجُ (۳) فَإِنْ وَلَدَتْ بَعْدَهُ ثَبَتَ بِلَا دَعْوَةٍ بِخِلَافِ الْأَوَّلِ (۴) وَانْتَفَى نَسَبُهُ (۵) وَعَتَقَتْ بِمَوْتِهِ مِنْ كُلِّ مَالِهِ وَلَمْ تَسْعَ لِغَرِيمٍ

**ترجمه**:که مینځې له خپل مولی څخه بچی پیداشو نو ددغې مینځې هیڅوک مالک نه شې جوړیدلای .او وطئ ورسره کیدلای شئ او خدمت ځنې اخستل کیدلای شې او په مزدورې ورکول کیدلای شې او په نکاح ورکول کیدای شې .بیا که بچی پیداشو له هغه وروسته دهغه نسب له مولی څه بغیر دعوې ثابتیږي .بخلاف داول بچې ،او دمولی په نفی کولوسره منتفی کیږي ،او دمولی له ټول مال څخه دهغه له مرګ وروسته آزادیږي او دمولی دقرضخواهانو لپاره به ګټه نه کوي.

**تشریح**:(۱)که مولی له خپلې مینځې سره وطئ وکړي له هغې څخه دده بچی پیداشو او مولی اقرار وکړی چې.دابچی زماله نطفه څه دی ،نو دامینځه دهغه ام ولده ګرزیږي لهذا دمولی لپاره اوس دامینځه .یوچا ته په ملکیت کې ورکول ،مثلا خرڅول یاهبه کول وغیره جائز نه دی څکه حضور ﷺ دحضرت ماریه قطبیه په حق کې وویل . اعتقهاولدها ،(هغه دهغې ولد آزاده کړه ).

(۲)البتة مولی له هغې سره وطئ کولای شې او له هغې څخه خدمت اخستلای شې او هغه په اجاره ورکولای شې او هغه جبرا په نکاح ورکولای شې ولې چې دمولی ملکیت تراوس قائم دی لهذا مولی دمذکوره بالا تصرفاتو مجاز کیږي.

(۳)بیانو که مولی دمینځې دیوبچې اقرار وکړی نو له دې وروسته چې مینځې کوم بچی وزیږوې دهغه بچې نسب دمولی څه بغیر دمولی له اقرارثابتیږي دهغه لپاره دمولی داقرار ضرورت نشته څکه داول بچې اقرارچې مولی وکړی مولی ثابته کړه چې ددامینځې سره دوطئ کولو څه دهغه مقصود ولد دی لهذا اوس دثبوت نسب لپاره دمولی داقرار ضرورت نشته .بخلاف داول بچې چې دهغه نسب له مولی څخه تر هغو نه

ثابتیږي تر څوچې مولی دهغه اقراورنه کړي ولې چې له مینځې سره دوطئ کولو څه مقصود قضاء شهوت کیږي ولدنه مقصودیږي لهذا دثبوت نسب لپاره دعوی لازمې ده بخلاف النکاح چې په هغه کې مقصود متعین دی بیادعوی نسب هیڅ ضرورت نشته .

(۴)قوله وینتفی بنفیه ای ینتفی نسب الولد الثانی بمجرد نفی المولی ،یعنی که مولی ددوهم بچې دنسب نفی وکړه نو صرف دنفی کولو څه دبچی نسب له مولی څه منتفی کیږي ،دنفی نسب لپاره دلعان هم ضرورت نشته ځکه دمینځه فراش ضعیف دی حتی چې که مولی دبل چا په نکاح کې ورکړه دهغې فراش کیدل ختم کیږي لهذا ددابچې نسب صرف له نفی کولو څه منتفی کیږي .بخلاف منکوحه چې دهغې فراش کیدل قوی دی لهذا صرف دنفی کولو څه دهغې دبچی نسب نه منتفی کیږي تر څوچې لعان نه وکړي .

(۵)دمولی له مرگ وروسته ام ولده دټولې ترکه څخه آزادیږي ځکه دانسان حاجت وخپل ولدته حاجتې اصلیه دی او دبچی ومورته حاجت اصلیه کیدلوکې دبچی مساوی دی لهذا دانسان حاجت وخپل ولدته حاجت اصلیه دئ او دکوم شئ وطرف ته چې دانسان حاجت اصلیه وي هغه دتکفین په شان دورثه ؤ تر حق مقدم وي .او که پر مولی باندې قرض وو نوپه ام ولده باندې دخپل قیمت په آندازه دقرض غوښتونکو لپاره مزدوري کول هم لازمي نه ده لماقلنا .

(۶)وَلَوْ أَسْلَمَتْ أُمُّ وَلَدِ النَّصْرَانِيِّ سَعَتْ فِي قِيمَتِهَا (۷) وَإِنْ وَلَدَتْ بِنِكَاحٍ فَمَلَكَهَا فَهِيَ أُمُّ وَلَدِهِ (۸) وَلَوْ ادَّعَى وَلَدَ أَمَةٍ مُشْتَرَكَةٍ ثَبَتَ نَسَبُهُ وَهِيَ أُمُّ وَلَدِهِ (۹) وَلَزِمَهُ نِصْفُ قِيمَتِهَا وَنِصْفُ عُقْرِهَا لَا قِيمَتُهُ

**ترجمه**: که دنصرانی ام ولده اسلام راوړی نو دخپل قیمت په آندازه به کټه کوي ،که دمینځې بچی له نکاح څه پیداشو بیامیړه دهغی مالک شو نو هغه دده ام ولده کیږي ،او که دمشتر کې مینځې دبچی دعوی وکړه نو دده نسب ثابتیږي او هغه دده ام ولده جوړیږي ،او دهغه پر ذمه نصف قیمت دمینځې او نصف مهر لازمیږي نه دبچی قیمت .

**تشریح**:(۶)که دیو نصرانی ام ولده مسلمانه شوه نو هغه به خپل قیمت گټي ومولی ته به یې ورکوي ځکه په داکې دطرفینو رعایت دی چې مینځه به مکاتبه جوړه کړي له هغه څه به دکافر ام ولده کیدلو ذلت لرې شي او وکافر ته به قیمت ورکړي له هغه څه به ضرر لرې کړل شي هغه ضرر چې دهغه محترم ملک بلاعوض زائل نه شي .

(۷)که یوسړي دبل چا له مینځې سره نکاح وکړه او له هغې څخه یې بچی پیداشو بیا یو طریقه سره دازوج دهغې مینځې مالک شو نو دامینځه اوس دهغه ام ولده جوړیږي ولې چې دام ولدیت کیدلوسبب جزئیت دی یعنی په واسطه دولددمولی او مینځې کې جزئیت ثابتیږي او داجزئیت دام ولده کیدلو سبب دی او په مذکوره صورت کې پیداکیږي .

(۸)که یوه مینځه د۲کسانو په مابین کې مشترکه وه بیا هغې بچی وزیږوی او له شریکینو څه یوه دعوه وکړه چې .دابچی زماڅخه دی ،نو دابچی نسب له مدعی څه ثابتیږي ځکه نصف مینځه دهغه ملک ده له دې وجې دهغه دحصې په آندازه نسب ثابتیږي او دباقي مانده نسب هم ثابتیږي ولې چې نسب نه حصې

کيږي له دې وجې چې دهغه سبب (يعنی استقرار الحمل) حصې او اجزاء نه کيږي .او مينځه ددامدعی ام ولده کيږي ځکه دانه شي کيدلای چې دمدعی حصه ام ولده وي او باقي حصه قن وي .

(۹)او دبچی په مدعی باندې دخپل شريک لپاره دمينځې نصف قيمت لازميږي ځکه دتکميل الاستيلاد وروسته مدعی دخپل شريک دحصې هم مالک کيږي لهذا دشريک دحصې قيمت په هغه باندې لازميږي .او په مدعی باندې نصف مهرد مينځې هم واجبيږي ولې چې هغه له مشترکې مينځه سره وطئ کړيدي ،مگر دبچی قيمت په مدعی باندې لازم نه دی ولې چې دقيمت له اداکولو وروسته مينځه دمدعی ام ولده جوړيږي نو داځنې فهم ميږي چې بچی هم دهغه په ملکيت کې پيدا شوی دی له دې وجې دبچی هيڅ قيمت په مدعی باندې نه لازميږي .

## كِتَابُ الْأَيْمَانِ

### داكتاب دايمانو په بيان کې دی

ايمان ديمين جمع ده ،او يمين په لغة کې دقوة په معنی دی قال الله تعالى ﴿لاخذنامنه باليمين﴾ ای بالقوة ،په همدې وجه نبی لاس ته يمين ويل کيږي ،دقسم په ذريعه سره ځرنگه چې ديوه کار دکولو يانه کولو عزم په پوره قوت سره ظاهره کيږي په دې مناسبت سره قسم ته يمين ويل کيږي ،او اصطلاحی تعريف يې مصنف رحمه الله په خپله کړی دی .

ف:حلف دقسم په معنی ،حالف قسم خوړونکی ،محلوف عليه په کوم شئ چې قسم خوړل شوی وي ، يمين دکوم په پابندي نه کولو چې کفاره لازميږي ،حنث دقسم ماتيدل ،او حانث قسم ماتونونکی .

کتاب الايمان له ماقبل سره مناسبت دادی چې په يمين ،نکاح ،طلاق او عتاق کې په هريوه کې هزل او اکراه مؤثرنه ده بيا ځرنگه چې په نکاح کې دعبادت معنی هم شته ځکه يې نکاح ترټولو مخته ذکر کړه ،او په طلاق سره ځرنگه چې دنکاح رفع کيږي په دې وجه طلاق له نکاح سره ډيرمناسبت لري ځکه يې له نکاح ځخه وروسته طلاق ذکر کړ ،بيا په طلاق او عتاق کې ځرنگه چې داسقاط معنی شته ځکه يې له طلاق ځخه وروسته عتاق ذکر کړ په دې دول نو دټولو په اخيرکې ديمين ذکرمناسب دی .خاص کړله عتاق سره يې مناسبت دادی چې لکه ځرنگه چې په عتاق سره په معتَق کې قوت حکمی حاصليږي همداشان په يمين سره هم دقسم خوړونکي په اراده کې ټينگښت راځي .

(۱)اليمين تقوية احد طرفي الخبر بالمقسم به (۲) خلفه على ماضٍ كذبا عمدًا غموس (۳)وظنًا لغوٌ وأثم في الأولى دون الثانية (۴)وعلى آتٍ منعقدة وفيه كفارة فقط (۵)ولو مكرها او ناسيا (۶)او حنث كذلك

**ترجمه** :يمين مضبوط کول دي دخبرله طرفينو ځخه يوه لره دمقسم به په ذريعه سره ،نو دچا په دروغو سره قسم په تيرشوي باندي عمدا غموس دی ،او په گمان کولو سره لغو دی او گنهکاريږي په اول کې نه په دوهم کې ،او په راتلونکي باندي منعقده دی او په دي کې صرف کفاره ده که ځه هم په زورسره وي يا په هيره سره وي ،يا حانث شي په همدي ځير.

چې لکه څرنګه چې په عتاق سره په معتَق کې قوت حکمي حاصليږي همداشان په يمين سره هم دقسم خوړونکي په اراده کې ټينګښت راځي .

( ۱ )اليمين تقوية احد طرفي الخبر بالمقسم به( ۲ )حلفه على ماض كذبا عمدا غموس( ۳ )وظنا لغو( وأثم في الأولى دون الثانية( ۴ )وعلى آت منعقدة وفيه كفارة فقط( ۵ )ولو مكرها او ناسيا( ۶ )او حنث كذلك

**ترجمه** :يمين مضبوط كول دي دخبرله طرفينو څخه يوه لره دمقسم به په ذريعه سره ،نودچاپه درواغو سره قسم په تيرشوي باندي عمداغموس دی ،اوپه ګمان كولو سره لغو دی او ګنهګاريږي په اول کې نه په دوهم کې .اوپه راتلونکي باندي منعقده دی اوپه دي کې صرف كفاره ده كه څه هم په زورسره وي ياپه هيره سره وي ،ياحانث شي په همدي څير.

**تشريح** :(۱)مصنف رحمه الله ديمين شرعي تعريف كړی دی چې دخبرله دواړوطرفونو (يعني جانب صدق اوجانب كذب ) څخه يودمقسم به (په كوم شي چې قسم وخوړل شي )په ذكرسره مضبوطولوته يمين ويل كيږي .

(۲)بيايمين پردري قسمه دی ./نمبر۱. يمين غموس.يمين غموس په تيرشوی كارعمداپه درواغوقسم خوړلوته ويل كيږي مثلاچايو كاركړی وي اوورمعلوم هم وي چې ماداكاركړی دی بياهم وايي والله ماداكارنه ده كړی ،نودده داقسم يمين غموس دی ،دماضي (تيرشوي كار)قيداكثري دی ولی چې كه څوک في الحال په اثبات الشئ يانفي الشئ باندي په درواغوقسم وخوري نوداهم يمين غموس دی ،غموس له غمس څخه دی په معنی دادخال في الماء نويمين غموس هم خپل صاحب له ګناه څخه وروسته په اوركي داخلوي.په داسي قسم خوړونكي باندي كفاره نشته هوتوبه اواستغفاربه كوي ولی چې يمين غموس ګناه كبيره ده دهغي ارتفاع په توبه او استغفارسره كيدای شي نه په كفاره سره . امام شافعي رحمه الله ديمين غموس په صورت کې دوجوب كفاري قائل دی .

(۳)قوله وظنالغواى حلفه على امر ماض ظانا ان الامر كما قال لغو ./نمبر۲.يمين لغو دادی چې دتيري شوي زماني په كارقسم وخوړل شي مثلا ووايي .والله مادافلان كاركړی دی اودده ګمان هم دغه وي چې داكارماكړی دی اوپه واقع کې داكارده نه وي كړی ،ياووايي .والله ماداكارنه ده كړی اودده ګمان داوي چې داكارمانه ده كړی حال داچې په واقع کې ده هغه كاركړی وي ،امام محمد رحمه الله له امام ابو حنيفه رحمه الله څخه نقل كړي دي چې مايجرى بين الناس من قولهم لا والله ،بلى والله من غير قصد اليمين ،داهم يمين لغو دی .له حضرت عائشه رضي الله عنها څخه هم موقوفاومرفوعا همداشان مروی دی.اوپه يمين غموس خوړلوسره حالف ګنهګاريږي ولی چې دنبی كريم ﷺ ارشاددی چې كبيره ګناه له الله سره شريک نيول، دوالدينو نافرماني كول ،ناحقه دكوم نفس قتل كول اويمين غموس دی.اوپه يمين لغوکې اميددادی چې الله تعالى به دصاحب يمين مؤاخذه ونه فرمايي لقوله تعالى ﴿لا يؤاخذكم الله باللغو في أيمانكم﴾ (يعني ستاسي په قسموکې چې كوم لغوواقع شي دهغه مؤاخذه نه فرمايي ).

( ۴ )قوله وعلى آت منعقدة اى حلفه على امر مستقبل منعقد ،يعني دراتلونكي كوم كارپه كولويانه كولوسره قسم خوړل يمين منعقده دی مثلاڅوک ووايي ،والله زه به سبق زده كوم ،ياوالله زه به دفلانكي كورته ورنه شم

،دي حكم دادى چې كه داكس حانث(دكوم كاردنه كولوقسم چې يې خوړلى ووهغه يې وكړدي كس تد حانث ويل كيږي )شونوپرده كفاره لازمه ده لقوله تعالى﴿وَلٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ﴾ (ليكن په كوموسره چې تاسې قسمونه مضبوط كړل دهغه مؤاخذه فرمايې).كفاره صرف ديمين منعقده په صورت كې ده په باقي دووقسمونوكې كفاره نشته كمامر.

(۵)يعنى چاچې عمداقسم وخوړى اوپرچاچې دقسم خوړلولپاره زوروكړل شواوچاچې په هيره سره قسم وخوړى داټول په حكم كې برابردي حتى چې دحنث په صورت كې له دوئ څخه په هريوه كفاره لازميږي لقوله ﷺ (ثلث جدهن جدوهزلهن جدالنكاح والطلاق واليمين )(يعنى دري شيان داسې دي چې دهغوئ قصدهم عمددى اوهزل يې هم عمددى يعنى نكاح ،طلاق اوقسم).

(۶)همداشان كه چامحلوف عليه كارقصداوكړياچادى په محلوف عليه كاركولوباندي مجبوركړاوده دمجبوري په حالت كې محلوف عليه كاروكړياددہ قسم په يادنه وواوده محلوف عليه كاروكړنوداټول صورتونه په حكم كې برابردي ولى چې اكراه اونسيان فعل حقيقي نه شي معدوم كولى لهذااكراه اونسيان په صورت كې هم پرده كفاره واجب ده.

(۷)وَالْيَمِينُ بِاللّٰهِ تَعَالٰى وَالرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ وَعِزَّتِهِ وَجَلَالِهِ وَكِبْرِيَائِهِ (۸)وَأُقْسِمُ وَأَحْلِفُ وَأَشْهَدُ وَإِنْ لَمْ يَقُلْ بِاللّٰهِ (۹)وَلَعَمْرُ اللّٰهِ وَأَيْمُ اللّٰهِ وَعَهْدُ اللّٰهِ وَمِيثَاقِهِ وَعَلَيَّ نَذْرٌ وَنَذْرُ اللّٰهِ (۱۰)وَإِنْ فَعَلَ كَذَا فَهُوَ كَافِرٌ

**ترجمه** :اوقسم په الله سره اوپه رحمن اورحيم سره اودالله تعالى په عزة سره اودهغه په اوركې سره اودهغه په كبريائي سره كيږي ،اوپه الله سره قسم خورم اوحلف اخلم اوگواهي وركوم كه څه هم دبالله لفظ ونه وايې ،اودالله تعالى په بقاء سره او دالله تعالى دقسم اودالله تعالى په عهداودهغه په پيمان سره اوپرمانذردى اودالله تعالى په نذرسره ،اوكه داسې وكړم نوزه كافريم.

**تشريح** :(۷)يمين دالله تعالى په ذاتي نوم الله سره منعقدكيږي يادالله تعالى له نومونوڅخه كوم بل نوم وي لكه الرحمن،الرحيم،العليم،الحليم وغيره خواه كه په دي نومانوسره قسم خوړل متعارف وي اوكه نه دي.يادالله تعالى له ذاتي صفتونوڅخه يوصفت وي مگرشرط دادى چې په دي صفت سره به قسم خوړل په خلكوكې متعارف وي لكه بعزة الله وجلاله وكبريائه وملكوته وجبروته وعظمته وقدرته ولى چې په دي سره قسم خوړل متعارف دي.

**ف**:صفات بارى تعالى پردوه قسمه دي،ذاتي،فعلي .صفات ذاتي هغه دي چې دهغوئ په ضدسره الله تعالى نه شي متصف كيدلى لكه عليم حليم عزيز،كبيروغيره اوصفات فعلي هغه دي چې دهغوئ په ضدسره الله تعالى متصف كيدلى شي لكه غضب،سخط،رضاوغيره.دعلماء ماوراءالنهررائه داده چې ديمين مداريه عرف دى لهذا چيرته چې دالله تعالى په كوم قسم صفت سره قسم خوړل متعارف وي په هغه سره قسم خوړونكى حالف كيږي.

(۸)كه چاوويل اقسم ،زه قسم خورم يااېي وويل زه حلف اخلم ،يازه شهادت وركوم نوداكس حالف شماركيږي كه څه هم احلف بالله يااشهد بالله ونه وايې يعنى لفظ الله ذكرنه كړي ولى چې داالفاظ په حلف كې مستعمل دي.

(۹)همداشان که چاوویل ولعمرالله لافعلی کذایایې وویل وایم الله لافعلن کذانوهم به حالف وي ولی چې لعمرالله په معنی دبقاء الله (یعنی دالله تعالی په بقاء سره قسم )اوبقاء دباری تعالی صفت دی لهذاداحلف بصفة من صفات الله دی، اوایم الله لافعلن کذاپه معنی دیمین الله لافعلن کذا (یعنی دالله تعالی قسم )دی ځکه په دي ویناسره هم حالف کیږي، همداشان که چاوویل وعهدالله (دالله تعالی پرعهدقسم )یاومیثاق الله (دالله تعالی پرمیثاق قسم )نوهم حالف دی ولی چې عهدیمین دی قال الله تعالی ﴿واوفوا بعهد الله﴾ (یعنی پوره کړی دالله تعالی عهد )بیایې فرمایلې دي﴿ولا تنقضوا الأیمان بعد توکیدها﴾ (خپل قسمونه مه ماتوئ له توکید څخه وروسته )اومیثاق دعهدپه معنی دی ځکه نوپه دي دووصورتونوکې حالف کیږي .همداشان که یې وویل علی نذریاعلی نذالله نوداهم قسم دی لقوله ﷺ من نذرنذراولم یسم فعلیه کفارة یمین (یعنی چاچې کوم نذروکړاوهغه یې بیان نه کړنوپرده ده دقسم کفاره لازمه ده ).

(۱۰)که چاداسې وویل ،که ماداکاروکړنوزه به کافریم ،یایهودی یم ،یایې وویل زه به نصرانی یم وغیره نودایمین دی اودا کس حالف شمارل کیږي ولی چې کله ده شرط دکفرعلامت وګرځاوونودده دااعتقادشوچې دهغه پابندي لازمی ده اوله محلوف علیه څخه ځان ساتل واجب دی لهذادایمین دی وقال ابن عباس رضی الله عنهما من حلف بالتهود فهو یمین (چاچې دیهودی والی قسم وخوړی نوهغه قسم دی ).اوکه یې داداسې فعل په باره کې وویل کوم چې ده له وړاندي څخه کړی دی نودایمین غموس دی .

ف :یاکه ده ته معلومه وي چې دایمین دی نودحنث په صورت دی نه کافرکیږي اودده اعتقادداوي چې په داسې حلف سره کافرکیږم نوکافرکیږي ولی چې داقدام علی الفعل په وجه سره دی په کفرراضی شواورضابالکفر کفردی .

(۱۱)لا بعلمه وغضبه وسخطه ورحمته(۱۲) والنبي والقرآن والكعبة(۱۳) وحق الله(۱۴) وإن فعله فعلي غضب الله وسخطه(۱۵) أو أنا زانٍ أو سارق أو شارب خمر أو آكل ربا

**ترجمه**:نه په دي ویناسره چې دالله تعالی په علم اودهغه په غضب اودهغه په ناراضګی ،اودهغه په رحمت سره قسم اونبی اوقران اوکعبه ،اودالله تعالی په حق سره قسم ،اونه په دي ویناسره چې که ماهغه کاروکړنوپرمادي دالله تعالی غضب وي اودهغه ناراضګې دي وي ،اوه زانی یم اوغل یاشراب خوریاسودخوریم .

**تشریح** :(۱۱)قوله لا بعلمه ای لا یکون یمینا لو قال بعلم الله تعالی ،یعنی داویل بعلم الله تعالی (دالله تعالی په علم قسم)، یابغضب الله (دالله تعالی په غضب قسم )یابسخط الله (دالله تعالی په ناراضګی سره قسم ) یابرحمة الله (دالله تعالی په رحمت سره قسم )نوداقسم نه دی که څه هم داهم دالله تعالی له صفات ذاتیه وڅخه دي مګرځرنګه چې په دي سره قسم خوړل متعارف نه دي لهذاقسم نه دی.

(۱۲)قوله والنبی والقرآن ای لا یکون یمینا لو قال بالنبی لافعلن کذا او القرآن لافعلن کذا،یعنی که چاله الله تعالی ماسواپه بل باندي قسم وخوړی مثلاًوي ویل دنبی قسم ،دقرآن قسم ،دکعبه قسم ،نوداکس حالف نه شمارل کیږي ولی چې په دي سره قسم اخیستل متعارف نه دي ،اودغیرالله قسم خوړل منهی عنه دي لقوله ﷺ (من کان منکم حالفا فلیحلف بالله اولیذر )(په تاسې چې څوک هم قسم خوري هغه دي په الله قسم وخوري یادي پریږدي ).

## په نبی ،قرآن او کعبه سره د قسم اخيستلو حکم

ف:مګر څرنګه چې نن صباپه نبی ،قرآن اوکعبه سره قسم خوړل متعارف دی لهذاپه دوئ سره قسم اخيستونکی حالف شمارل کيږي.

(۱۳)قوله وحق الله ای لايکون يمينالوقال وحق الله ،يعنی که چاوويل وحق الله لافعلن کذانوهم حالف نه دی ولی چې له وحق الله څخه مرادطاعة الله دی نوديمين لغيرالله په وجه سره داحلف نه دی ،څرنګه چې په دې وخت کې په حق الله سره قسم خوړل متعارف دی ځکه نوپه دې سره قسم خوړونکی حالف شمارل کيږي.

(۱۴)قوله وان فعله فعلي غضبه ای لايکون يمينابقوله ان فعلت الشئ الفلانی فعلی غضب الله ،يعنی که چادالله تعالی په صفاتوفعليه کې په کوم يوه سره قسم وخوړی مثلاوي ويل ان فعلت کذافعلی غضب الله (که مافلانی کار وکړنوپرمادي دالله تعالی غضب وي)ياېي وويل ان فعلت کذافعلی سخط الله (که مافلانی کاروکړنوپرمادي دالله تعالی ناراضی وي)نوداکس قسم خوړونکی نه دی ولی چې په دې الفاظوسره قسم خوړل متعارف نه دی.

(۱۵)قوله اوانازان ای لايکون يمينالوقال ان فعلت الشئ الفلانی فانازان ،يعنی که چاوويل که ماداکاروکړنوزه به زانی ياشراب خورياسودخوريم ،نوداکس حالف نه شمارل کيږي ولی چې په دې الفاظوسره قسم خوړل متعارف نه دي ليکن که چيرته په دوي الفاظوسره قسم خوړل متعارف وي نودی حالف دی.

(۱)وَحُرُوفُهُ الْبَاءُ وَالْوَاوُ وَالتَّاءُ وَقَدْ تُضْمَرُ (۱۷)وَكَفَّارَتُهُ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ أَوْ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ كَهُمَا فِي الظِّهَارِ (۱۸)أَوْ كِسْوَتُهُمْ بِمَا يَسْتُرُ عَامَّةَ الْبَدَنِ (۱۹)فَإِنْ عَجَزَ عَنْ أَحَدِهِمَا صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مُتَتَابِعَةٍ وَلَا يُكَفِّرُ قَبْلَ الْحِنْثِ

**ترجمه**:اوحروف قسم باء اوواؤاوتاء دي اوکله کله حرف قسم مقدروي ،اوکفاره دقسم ازادول دي ياخورک ورکول دي لسو مسکينانوته لکه څرنګه چې داد واړه په کفاره ظهار کې وي ،يادلسو مسکينانو لباس دی په کوم سره چې هغه پټ کړي خپل اکثربدن ،نوکه عاجزشوپه دې دواړو کې له يوه څخه نودري روژي دي ونيسي متصلې اوکفاره دي نه ورکوي له حانث کيدلو څخه وړاندي.

**تشريح** :(۱۶)قسم په حروف قسم سره منعقد کيږي اوحروف قسم دري دي واؤلکه والله ،اوباء لکه بالله ، اوتاء لکه تالله، ولی چې له دوئ څخه هريوپه باب ديمين کې دقسم لپاره مقرراومروج دی اوپه قرآن کې مذکوردی ،اوکله کله حرف قسم مقدوي نوهم قسم خوړونکی حالف کيږي لکه الله لاافعل کذا ای والله الخ ،ولی چې داختصارلپاره دحرف حذف کول په عربو کې متعارف اوددوئ عادت دی.

(۱۷)کفاره يمين ديوغلام ازادول دي ،که يې خوښه شوه نولس مسکينانوته دي خورک ورکړي ،ياکه يې غنم ياوړه ورکول نوهريوه مسکين ته دي نصف صاع ورکړي کوم چې دنن صباپه حساب سره پاوکم دوه سيره جوړيږي ليکن احتياطادوه سيره ورکول بهتردي .اوکه يې خرماياوريشې ورکولی نوهرمسکين ته دي يوه صاع (بحساب درهم ۲۷۰تولې اوبحساب مثقال ۲۷۳تولې )ورکړي ،يادي هرمسکين ته دوه وخته په ډک نس خورک ورکړي کمامرفی اطعام الظهار ،والاصل فيه قوله تعالى ﴿فَكَفَّارَتُهُ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ مِنْ أَوْسَطِ مَا تُطْعِمُونَ أَهْلِيكُمْ أَوْ كِسْوَتُهُمْ﴾(نودي کفاره لسو محتاجانوته هغه خورک ورکول دي کوم چې تاسې خپل اهل اوعيال ته ورکوي ياهغوئ ته جامې ورکول دی يادغلام ازادول دي ).په کفاره کې به غلام اواطعام په هغه ډول وي کوم چې په کفاره ظهارکې دی نوکوم غلام چې په کفاره ظهار کې کفايت کوي هغه

په کفاره یمین کې هم کفایت کوي یعنی دمسلمان غلام والي شرط نه دی.بلکه مسلمان، کافر، کوچنی،اولوی کوم یو چې هم وي کافی دی ،له کفاره ظهارسره تشبیه به کیفیت کې ده په کمیت کې نه ده.

(۱۸)که یې خوښه وي نوحانث فی القسم دي دکفارې په ډول لسومسکینانوته جامې ورکړي هریوه ته دي لږترلږه دومره جامه ورکړي چې په هغې سره دده عام بدن پټ شي ،دامام محمد رحمه الله په نزدلږترلږه مقدارچې په کفاره کې کفایت کوي هغه دومره ده چې په هغې کې لمونزاداء کول جائزوي ،اومیانه جامه دي وي کومه چې لږترلږه تردریومیاشتوپورې داستعمال قابل وي.

(۱۹)که حانث فی القسم په مذکوره بالادریوشیانوڅخه عاجزشوپه یوه یې هم قدرت نه لاره نومتصلې درې روژې دي ونیسي لقوله تعالی﴿فمن لم یجد فصیام ثلاثة ایام﴾(یعنی چالره چې مقدورنه وي نوهغه دي درې ورځې روژه ونیسي)اودابن مسعود رضی الله عنه په قراة کې دمتتابعات قیدهم شته اوداخبرمشهور په څیردی لهذاددې په وجه سره په کتاب الله زیادت کول جائزدی،ځکه نودادرې روژې متصلې نیول لازم دي ،اوکه چاله حانث کیدلوڅخه وړاندې کفاره ورکړه نوجائزنه ده ول چې کفاره دسترجنایت لپاره ده نوترڅوچې حانث نه وي نوجنایت نه شته ځکه قبل الحنث کفاره ورکول جائزنه ده.

(۲۰)وَمَنْ حَلَفَ عَلٰى مَعْصِيَةٍ يَنْبَغِي أَنْ يَحْنَثَ وَيُكَفِّرَ (۲۱)وَلَا كَفَّارَةَ عَلٰى كَافِرٍ وَإِنْ حَنِثَ مُسْلِمًا (۲۲)وَمَنْ حَرَّمَ مِلْكَهُ لَمْ يَحْرُمْ فَإِنِ اسْتَبَاحَهُ كَفَّرَ (۲۳)كُلُّ حِلٍّ عَلَيَّ حَرَامٌ فَهُوَ عَلَى الطَّعَامِ وَالشَّرَابِ وَالْفَتْوٰى عَلٰى أَنَّهُ تَبِينُ امْرَأَتُهُ مِنْ غَيْرِ نِيَّةٍ

**ترجمه** :اوکوم څوک چې قسم وخوري په کومه ګناه باندې نوهغه ته په کارده چې حانث شي اوکفاره اداء کړي ،اوکفاره نشته په کافرکه څه هم دی حانث شي په حالت اسلام کې ،اوکوم کس چې حرام کړي خپل ملک نونه حرامیږي پیاکه ده هغه مباح کړنوکفاره دي اداء کړي ،اوهرحلال پرما حرام دی ویل محمول دي دخورک څښک په شیانواوفتوی پردې ده چې دده ښځه بائنه کیږي بلانیته.

**تشریح** :(۲۰)که چاپرګناه قسم وخوړی مثلاوي ویل والله زه به لمونځ نه کوم ،یایې وویل والله زه به له خپل پلارسره خبرې ونه کړم ،یایې وویل والله زه به نن فلانکی کس قتل کړم ،نومناسب ده بلکه واجب ده چې دی خپل ځان حانث کړي اودخپل قسم کفاره ورکړي اودګناه کارونه کړي لقوله ﷺ (من حلف علی یمین ورأی غیرها خیرامنها فلیأت بالذی هو خیرثم لیکفر بمینه) (یعنی چاکه په یوشئ قسم وخوړی اوله دې څخه ماسوابل شئ ښه ورته ښکاره شونوکوم شئ چې ښه ورته ښکاره شوی هغه دي وکړي بیادې دخپل قسم کفاره ورکړي).

(۲۱)که کافرقسم وخوړی بیاحانث شونوپرده کفاره نشته خواه که دکفرپه حالت کې حانث شي اوکه له مسلمانیدلوڅخه وروسته حانث شي په هردووصورتونوکې پردې کس کفاره نشته ولې چې کافردقسم اهل نه دی ځکه چې قسم دتعظیم لپاره خوړل کیږي ومع الکفرلایکون معظما ،همدارازکفاره فی ذاته عبادت دی اوکافردعبادت اهل نه دی.

(۲۲)که چاپرخپل ځان خپل مملوک شئ حرام کړمثلاوي ویل طعامی هذاعلی حرام (زمادا طعام پرماحرام دی )نونه حرامیږي بلکه اوس که دی هغه طعام دځان لپاره حلال وګرځوي یعنی له هغه څخه څه وخوري نوپرده دقسم کفاره لازمیږي ولې چې حلال شئ پرخپل ځان حرامول قسم دی لکه چې نبی کریم ﷺ

پر ځېل ځان شهد حرام کړي وونو الله تعالى تنبيه وفرمايله اوهغه يې قسم وګرځاوو قال الله تعالى ﴿يا أيها النبي لم تحرم ما أحل الله لک قد فرض الله لکم تحلة أيمانکم﴾.

(۲۳)که چاوويل چې هرحلال شي پرماحرام دی نوداقسم صرف دخورک څښک په شيانوواقع کيږي ولې چې همدا متعارف دی لهذا له دي څخه وروسته که ده څه شی وخوړل يايې وڅښل نوحانث کيږي ،دخورک څښک له شيانو څخه علاوه په کوم بل شئ نه حانث کيږي الاداچې ده دخورک څښک له شيانو څخه علاوه دنوروشيانونيت هم کړی وي، ظاهرروايت خودغه دی ،ليکن متأخرين مشائخ فرمايي چې په دي قول سره بغيرله نيت څخه طلاق بائن واقع کيږي ولې چې دتحرم دلفظ غالب استعمال په طلاق کې دی وعليه الفتوی.

(۲۴)وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا مُطْلَقًا(۲۵)أوْ مُعَلَّقًا بِشَرْطٍ وَوُجِدَ وَفَى بِهِ(۲۶)وَلَوْ وَصَلَ بِحَلِفِهِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ بَرَّ

**ترجمه** :اوڅوک چې نذروکړي مطلق نذر،يامعلق بالشرط اوشرط موجودشي نوهغه دي پوره کړي ، اوکه يې يوځای کړله ځېل قسم سره لفظ دان شاء الله نوله قسم څخه بری کيږي .

**تشريح** :(۲۴)که چانذرمطلق (کوم چې معلق بالشرط نه وي )ومنی اومنذورداسې شئ وي چې دده له جنس څخه واجب وي اومقصودي عبادت وي لکه صوم ،صلوة وغيره نوپه ناذردهغه نذرپوره کول واجب دي لقوله ﷺ (من نذروسمى فعليه الوفاء بمانذر)(يعنې چاچې کوم نذرومنی اوهغه يې بيان کړنوپرده دځېل نذرپوره کول لازم دی).

(۲۵)همداشان که چاکوم نذرپه کوم شرط پوري معلق کړيياهغه شرط متحقق شونوپرده وفاء بالنذرواجب ده ولې چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدمعلق بالشرط دغيرمعلق بالشرط په څيردی ،داهم مروی ده چې امام ابوحنيفه رحمه الله له دي څخه رجوع کړي ده اوويلې يې دي چې که چاوويل ان فعلت کذافعلی حجة(که داسې وکړم نوپرماحج دی)يايې وويل ان فعلت کذافعلی صوم سنة (که داسې وکړم نوپرماديوه کال روژه نيول لازم دي )نوپه دي صورتونوکې کفاره قسم ورکول کافي دي همدادامام محمد رحمه الله قول دی .

(۲۶)که چاپرکوم کارقسم وخوړی اوله قسم سره متصل يې ورانديي ياوروسته ان شاء الله وويل نودهغه کارپه کولوسره نه حانث کيږي لقوله ﷺ ﴿من حلف على يمين فقال إن شاء الله فقد استثنى ومن استثنى فلا حنث عليه ولا كفارة﴾(يعنې چاچې په کوم شئ قسم وخوړی بيايې وويل ان شاء الله نوهغه له ځېل قسم څخه بری شو)،اوکه يې متصل ونه ويل بلکه څه وخت وروسته يې وويله نوحانث کيږي ولې چې اوس دارجوع عن اليمين ده اوله يمين څخه رجوع کول صحيح نه ده .

## بَابُ الْيَمِينِ فِي الدُّخُولِ وَالْخُرُوجِ وَالسُّكْنَى وَالْإِتْيَانِ وَغَيْرِ ذَلِكَ

دا باب دداخليدو ،اوسيدلو ،وتلواوراتللوپه بيان کې دی

څرنګه چې ديمين بنيادپرفعل ياترفعل باندي دی په دي وجه مصنف رحمه الله دلته هغه افعال بيانوي په کوموچې قسم خوړل کيږي ليکن څرنګه چې دځېل کثرت په وجه سره دمحلوف عليه افعالوحصرممکن نه

دی په دي وجه دلته داسې څوافعال ذکرکوي کوم چې فقهاؤپه خپلوکتابونوکي ذکرکوی ،هغه افعال بیاپردوه قسمه دي ،افعال حسیه وافعال شرعیه ،مصنف رحمه الله دادواړه په علیحده علیحده ابوابوکي ذکرکړي دي ،اول قسم دخول وخروج څرنګه چې جسم لره دخورک اوڅښک په نسبت ډیرلازم دي ځکه یې په پیل کې دهغوتفصیل بیان کړی دی.

**ف**:دیمین مداردشوافعوپه نزدپه حقیقة لغویه باندي دی اودامام مالک رحمه الله په نزدپه استعمال قرانی دی اودامام احمد رحمه الله په نزدپرنیت باندي دی اوموږپه نزدپرعرف (په دي شرط چې حالف دلفظ دمحتمل نیت کړی وي )نوکه کوم کس داسې ووایې والله لااهدم بیتا ،نودامام شافعی رحمه الله په نزددغې دجالې په ماتولوسره حانث کیږي ولی چې په لغت کې دغې جالې ته بیت ویل کیږي اوکه څوک ووایې والله لااکل لحمانودامام مالک رحمه الله په نزددماهي دغوښې په خوړلوسره هم حانث کیږي ولی چې په قرآن مجیدکې دماهي غوښه په لحم سره تعبیرشوي ده قال الله تعالی ﴿لتاکلون منه لحماطریا﴾ .(معدن)

(۱) حَلَفَ لَایَدْخُلُ بَیْتًا لَا یَحْنَثُ بِدُخُولِ الْکَعْبَةِ وَالْمَسْجِدِ وَالْبِیعَةِ وَالْکَنِیسَةِ وَالدِّهْلِیزِ وَالظُّلَّةِ وَالصُّفَّةِ (۲) وَفِي دَارٍ بِدُخُولِهَا خَرِبَةً (۳) وَفِي هَذِهِ الدَّارِ یَحْنَثُ وَإِنْ بُنِیَتْ دَارًا أُخْرَی بَعْدَ الْإِنْهِدَامِ

**ترجمه**:قسم یې وخوړی چې کورته به داخل نه شم نونه حانث کیږي کعبې اومسجداوکلیسه اوګرجا او دهلیزاوسائبان اوچوترې ته په داخیدلوسره ،اوکه یې لفظ داروایونوله ړنګیدلوپه صورت کې نه حانث کیږي ،اودهذه الداردویلوپه صورت کې حانث کیږي که څه هم دوهم جوړکړای شوله ړنګیدلوڅخه وروسته

**تشریح**:(۱)که چاقسم واخیست چې والله زه به بیت ته داخل نه شم بیادی کعبې یامسجدیابیعة (ګرجاد عیسائیانوعبادت ځای )یاکلیسه (دیهودیانوعبادت ځای )ته داخل شونونه حانث کیږي ولی چې بیت هغه مقام ته ویل کیږي چیرته چې شپه تیریږي حال داچې مذکوره بالامقامات دشپې تیرولولپاره نه دي جوړشوي لهذاپه دوئ کې دخول دخول فی البیت ننه شمارل کیږي .همداشان که څوک دهلیز(چوکټ ) یاسائبان ،یاچبوتري (دکومې چې څلوردیواله اوچت وي )ته داخل شونونه حانث کیږي ولی چې په دوئ کې هم شپه نه تیریږي دبعضوعلماؤرایه داده چې چې دهلیزپه دي ډول ووچې که دده دروازه بنده کړای شې نودی دهغه دننه پاتې کیدواوپه ده کې وسعت هم وو اوپرده چت هم وو نوحانث کیږي ولی چې داسې دهلیزکې خوب کول عادت دی همداشان که چبوتره کې چیرته دشپې تیرولوعرف وو نوپه هغې کې په داخیدلوسره هم حانث کیږي لماقلنا.

(۲)قوله وفی داراي لوحلف لایدخل دارافلایحنث بدخولها حال کونها خربة ،یعنی که چاقسم واخیست چې والله زه به دارته داخل نه شم ،داریې نکره ذکرکړنوړنګ کورته په داخیدلوسره نه حانث کیږي ولی چې داردعربواوعجموپه نزددهغه صحن اومیدان نوم دی چې پرهغه عمارت جوړشوی وي اوتعمیرپه ده کې وصف دی اووصف په غائب کې معتبردی ولی چې غائب په وصف سره پیژندل کیږي اوپه حاضر اومشارالیه کې وصف لغودی نوڅرنګه چې دلته دارنکره دی لهذاپه ده کې دوصف تعمیرتحقق معتبردی بغیرله تعمیرڅخه نه حانث کیږي.

(۳)قوله وفي هذه الدار ای لو حلف لایدخل هذه الدار یحنث .یعنی که چاقسم واخیست چې والله زه به دي دارته داخل نه شم، داریې متعین ذکرکړیاددي عمارت له منهدم کیدلوڅخه وروسته په دي میدان کې داخل شونوحانث کیږي که څه هم هغه کورله ړنګیدلوڅخه وروسته بیاجوړشوی وي ولی چې په متعین کې دوصف اعتبارنشته لهذا له تعمیرڅخه بغیرپه داخلیدلوسره هم حانث کیږي .

(۴)وَإِنْ جُعِلَتْ بُسْتَانًا أَوْ مَسْجِدًا أَوْ حَمَّامًا أَوْ بَيْتًا لَا (۵) كَهَذَا الْبَيْتِ فَهُدِمَ أَوْ بُنِيَ آخَرُ (۶) وَالْوَاقِفُ عَلَى السَّطْحِ دَاخِلٌ وَفِي طَاقِ الْبَابِ لَا (۷) وَدَوَامُ اللُّبْسِ وَالرُّكُوبِ وَالسُّكْنَى كَالْإِنْشَاءِ (۸) لَا دَوَامُ الدُّخُولِ

**ترجمه** :اوکه باغ یامسجدیاحمام یاکوټه جوړه کړای شوه نونه حانث کیږي ،لکه دهذا البیت ویلوپه صورت کې بیاهغه ړنګه شي یابله جوړه کړای شي ،اوپربام ولاړکس داخل شمارل کیږي اوددروازي په محراب کې ولاړکس داخل نه شمارل کیږي ،اوپه اغوستلو ،سپریدلواواوسیدلوکې دوام دانشاء په څیردی ،نه دوام دخول.

**تشریح** :(۴)که چاقسم واخیست چې والله زه به دي کورته داخل نه شم نوکه داکورړنګ کړای شواوباغ جوړشویا له ده څخه مسجدیاحمام یاکوټه جوړه شوه نواوس هغه ته په داخلیدلوسره نه حانث کیږي ولی چې اوس هغه ته دارنه ویل کیږي.

(۵)قوله کهذالبیت ای کمالایحنث فی حلفه لایدخل هذالبیت ،یعنی په مذکوره بالاصورت کې نه حانث کیږي لکه چې نه حانث کیږي په دي ډول قسم خوړلوکې چې والله زه به دي کوټې ته داخل نه شم بیاهغه ړنګه شي نوهغې ته په داخلیدلوسره نه حانث کیږي ولی چې له منهدم کیدلووروسته هغې ته بیت نه ویل کیږي اونه په هغې کې شپه تیریدای شي حال داچې بیت هغه ته ویل کیږي چې په هغه کې شپه تیریږي. همداشان که په دي ځای بله کوټه جوړه شي نوبیاحالف هغې ته داخل شي نونه حانث کیږي ولی چې له منهدم کیدلوڅخه وروسته هغې ته بیت نه ویل کیږي اوپه دوهم ځل تعمیرسره هغه کوټه نه ده پاتې په کومه کې چې یې دنه داخلیدلوقسم خوړلی وو ځکه نه حانث کیږي .

(۶)یعنی پربام ولاړکس داخل شمارل کیږي ولی چې بام له دارڅخه دی نوکه چاقسم واخیست چې والله زه به دي دارته داخل نه شم بیاله باهرڅخه دهغه پربام وختی نوحانث کیږي ولی چې بام له دارڅخه دی ،البته له مذکوره قسم خوړلوڅخه وروسته که حالف ددروازي په طاق یعنی محراب کې ودریدوپه دي ډول چې که دروازه بنده کړای شي نودی باهرپاتې کیږي نونه حانث کیږي ولی چې دروازه ددارا ومافیهاد حفاظت لپاره ده لهذا له دروازي څخه باهرچې کوم ځای دی هغه له دارڅخه نه دی .

(۷)دوام لبس ،رکوب اوسکنی لره دانشاء حکم دی یعنی که چاکومې معینې جامې په باره کې وویل والله زه به داپه تن نه کړم ،اوحال داچې ده هغه فی الحال اغوستې ده بیالږوخت په همدي حالت پاتې شونوداله سره اغوستل شمارل کیږي لهذا حانث کیږي .همداشان په سورلی باندي سوردی اووي ویل والله زه به په دي سورنه شم بیاڅه وخت په همدي حالت پاتې شونوداله سره نوي سورتیاشمارل کیږي لهذاحانث کیږي .همداشان که چاوویل والله زه به په دي کې ونه اوسیږم اوحال داچې دی په دي کورکې ناست دی نوپه

مزيدپاتې کيدلوسره حانث کيږي ولې چې په مذکوره افعالوکې دوام دتجددالامثال په ذريعه سره دی لهذاددوئ دوام لره ابتداء او انشاء حکم دی.

(٨)قوله لادوام الدخول اى ليس دوام الدخول كالانشاء ،يعنې دوام دخول دانشاء دخول په شان نه دی نوکه چاقسم واخيست چې والله زه به دې کورته داخل نه شم اوحال داچې دی په دې کورکې دی نوپه مزيدپاتې کيدلوسره نه حانث کيږي ترڅوچې راووځي اوبيرته داخل شي ولې چې دوام دخول انشاء الدخول نه دی ځکه چې دخول خو انفصال من الخارج الى الداخل دی اوپه مزيدپاتې کيدلوکې دامعنی نشته لهذانه حانث کيږي.

(٩)لَايَسْكُنُ هذهِ الدَّارَ اَوِ الْبَيْتَ اَوِ الْمَحِلَّةَ فَخَرَجَ وَبَقِيَ مَتَاعُهُ وَأَهْلُهُ حَنِثَ (١٠)بِخِلَافِ الْمِصْرِ (١١)لَايَخْرُجُ فَأُخْرِجَ مَحْمُولًا بِأَمْرِهِ حَنِثَ وَبِرِضَاهُ لَا بِأَمْرِهِ اَوْمُكْرَهًا لَا (١٢)كَلَّايَخْرُجُ اِلَّا اِلَى جِنَازَةٍ فَخَرَجَ اِلَيْهَا ثُمَّ اَتَى حَاجَةً

**ترجمه** :نه به اوسيږي په دې کورياکوټه يامحله کې بياپه خپله ووتی اودده اسباب او اهل په هغه کې پاتې شول نوحانث کيږي ،په خلاف دښار ،نه به اووځي بيارا اويستل شوپه راووچتولوسره دده په حکم نوحانث کيږي اودده په رضاسره نه دده په امرسره ياپه زوره په راويستل شونونه حانث کيږي ،لکه چې نه به اوځي مګردجنازې لپاره نوووتی دهغې لپاره بياکوم دکوم بل ضرورت لورته ولاړی.

**تشريح** :(٩)که چاقسم واخيست چې والله زه په دې کوريادې کوټه يادې محله کې نه اوسيږم ،بياخپله له محلې ولاړی اوبال بچيان اوسامان يې په مذکوره ځايونوکې پريښودنوحانث کيږي ولې چې په کوم کورياکوټه يامحله کې بال بچيان اوسامان وي په عرف کې دي کس ته په هغه کور،کوټه اومحله کې اوسيدونکی ويل کيږي.

(١٠)اوکه يې په دې ډول قسم واخيست چې والله زه په دې ښارکې نه اوسيږم بياپه خپله له هغه ځخه ووتی مګربال بچيان اوسامان يې هلته پريښودنونه حانث کيږي ولې چې له ښارڅخه په خپله له وتلووروسته ده ته دهغه ښاراوسيدونکی نه ويل کيږي ،دبعضوعلماؤرأيه داده چې دنن صباپه عرف کې ځرنګه چې بال بچيان اوسامان په کوم ښارکې وي هغه کس دهغه ښاراوسيدونکی شمارل کيږي لهذاحانث کيږي.

(١١)که چاداقسم واخيست چې والله زه له دې کورڅخه نه وځم بيادده په حکم سره بل چادی دده له کورڅخه پورته کړاو باهريې ويستی نوحانث کيږي ولې چې دمأمورفعل دآمرطرف ته منسوب کيږي نوګوياد ی خپله له ښارڅخه ووتی اوکه خلګودی په خپله ويستی ده خلګوته دايستلو امرنه ووکړی هودی دبه ايستلوراضي وونونه حانث کيږي لکه چې څوک دی په زورسره پورته کړي اوباهريې وباسي نونه حانث کيږي ولې چې په دې دواړوصورتونوکې دحالف له طرف څخه دامر دنه کيدلوپه وجه سره دخروج نسبت دحالف طرف ته نه کيږي لهذاحانث کيږي هم نه.

(١٢)قوله كلايخرج الاالى جنازة الخ اى كمالايحنث لوحلف لايخرج من داره الاالخ ،يعنې په مذکوره بالاصورت کې حالف نه حانث کيږي لکه چې څوک داسې قسم وخوری چې والله زه به له کورڅخه صرف دجنازې لپاره وځم دکوم بل کارلپاره نه وځم بيادی دکومې جنازې لپاره ووتی اوله دې سره يې خپل کوم بل کارهم وکړنوداکس

نه حانث کیږي ولی چې داخروج دبل کارلپاره نه دی بلکه دجنازي لپاره دی کوم چې له قسم څخه مستثنی دی یادبل کارلپاره تلل خروج نه ده بلکه هغه کارته وصول دی لهذا نه حانث کیږي .

(۱۳))لایخرج او لایذهب الی مکة فخرج یریدها ثم رجع حنث (۱۴) ولی لایاتیها لا (۱۵) لیاتینه فلم یاته حتی مات حنث فی آخر حیاته (۱۶) لیاتینه ان استطاع فهو علی استطاعة الصحة وان نوی القدرة دین (۱۷) لاتخرج الا باذنی شرط لکل خروج اذن (۱۸) بخلاف الا ان و حتی

**ترجمه** :نه به وځي یانه به ځي دمکې طرف ته بیا ووتی دمکې مکرمې په اراده سره بیا بیرته راغی نو حانث کیږي، او دلایاتیها دویلو په صورت کې نه حانث کیږي ،خامخا به راځي هغه ته بیا هغه ته رانه غی ترڅو چې وفات شو نو حانث کیږي دخپل ژوند په اخیر کې ،خامخا به راځي هغه ته که کیدای شول نو له دي څخه دصحت استطاعت مراد دی او که یې دقدرت نیت وکړنو دیانة به یې تصدیق کیږي ،مه وځه مګر زما په اجازه سره نو شرط دی هرځل وتلو له اجازت ،په خلاف دالاان او حتی ان ویلو کې .

**تشریح** :(۱۳)که چا په دي ډول قسم واخیست چې والله زه به دمکې مکرمې طرف ته و نه وځم یا مکې مکرمې ته به ولاړ نه شم.بیا دی دمکې په اراده سره روان شو مګر له لاري څخه بیرته راوګرځید نو حانث شو ولی چې له کور څخه خودمکې مکرمې په ارده سره وتلی دی او قسم یې هم پرهمدي خوړلی وو لهذا دقسم دماتولو په وجه سره حانث کیږي .

(۱۴)قوله ولی لایاتیها الا ای لو حلف لایاتیها مکة لایحنث بالخروج ،یعنی که چا په دي ډول قسم واخیست چې والله زه به مکې مکرمې ته نه ځم بیا دمکې په ارده سره روان شو مګر له لاري څخه بیرته راوګرځید نو نه حانث کیږي ولی چې په دي صورت کې ده لفظ دلا یأتیها استعمال کړی دی او اتیان له وصول څخه عبارت دی او وصول نه دی متحقق شوی لهذا نه حانث کیږي.

(۱۵)او که قسم واخیست چې والله زه به ضرورتاته درځم بیا نه ورغې ترڅو چې مړ شو نو حالف دخپل ژوند په اخیري جزء کې حانث کیږي ولی چې دژوند له دي جزء څخه وړاندي هروخت امید شته چې شاید دی خپل قسم پوره کړي او هغه ته ورشي او س څرنګه چې امید پاتې نه شو لهذا حانث کیږي.

(۱۶)که چا قسم واخیست چې والله زه به ضرورتاته درځم په دي شرط که زما استطاعت وو نو له استطاعت څخه صحت او سلامت آلات او اسباب مع عدم المانع مراددی یعنی که حالف تندرست وو او دراتلو اسباب مهیا وو کوم حسی مانع نه وو نو حانث کیږي ولی چې استطاعت متعارف همدادی . قدرت حقیقیه کوم چې مقارن للفعل وي (یعنی تقدیرالهی )مرادنه دی ولی چې داغیرمتعارف دی . او که ده دقدرت حقیقیه نیت وکړنو دیانة به دده تصدیق کیږي یعنی فیمابینه وبین الله نه حانث کیږي ولی چې ده دخپل کلام دحقیقي معنی نیت کړی دی مګر قضاء به دده تصدیق نه کیږي یعنی حاکم به دده دنیت اعتبار نه کوي ولی چې له عرف څخه خلاف دی .

(۱۷)که چا قسم وکړ چې والله زما ښځه به زما له اجازت څخه بغیر نه وځي نو دعدم حنث لپاره هرځل دوتلو اجازت ورکول ضروري دی ولی چې الاباذنه کې مخصوص خروج مستثنی دی باقي ټول اقسام دخروج په ممنوع والی کې داخل دي. نو که ده یو ځل اجازت ورکړ هغه ووته او وا پس راغله او دوهم ځل دده له اجازت څخه بغیر ووتله نو دا حالف حانث کیږي .

(۱۸)قوله وبخلاف الاان آذن وحتی ای بخلاف مالوقال لاتخرجی الاان اذن لک اوحتی آذن لک فانه لایشترط الاذن الامرة
،یعنی که خاوند وویل الاان اذن لک یاحتی آذن لک (مګرداچې زه تاته اجازت درکړم یاترڅوچې زه تاته اجازت درکړم) بیایې یوځل اجازت ورکړهغه ووتله بیابیرته واپس راغله اوس له دي څخه وروسته که هغه بغیرله اجازت څخه ووتله نوحالف نه حانث کیږي ولی چې حتی دغایه لپاره دی چې اجازت ورکول ددي قسم انتهاء ده لهذاپه یوځل اجازت ورکولوسره قسم انتهاء ته رسیږي په دي وجه له دي څخه وروسته په بلااجازت سره په وتلونه حانث کیږي اوان آذن لک پرحتی محمول دی.

(۱۹)وَلَوْ أَرَادَتْ الْخُرُوجَ فَقَالَ إِنْ خَرَجْتِ أَوْ ضَرَبَ الْعَبْدَ فَقَالَ إِنْ ضَرَبْتَ تَقَيَّدَ بِهِ (۲۰) كَاجْلِسْ فَتَغَدَّ عِنْدِي فَقَالَ إِنْ تَغَدَّيْتُ (۲۱) وَمَرْكَبُ عَبْدِهِ مَرْكَبُهُ إِنْ نَوَى وَلَا دَيْنَ عليه

**ترجمه**:اوکه ښځې دوتلواجازه وکړه خاوند وویل که ته ووتلې یادغلام دوهلواراده وکړه نوده وویل که تاووهی نوداپه دغه وتلواووهلوپوري مقید کیږي ،لکه داقول چې کښېنه له ماسره ناشته وکړه هغه وویل که ماناشته وکړه اودغلام سورلی دده سورلی ده که دهغه نیت وکړي اوپرغلام قرض نه وي.

**تشریح**:(۱۹)که یوې ښځې له کورڅخه دوتلواراده وکړه چې دديي خاوند وویل ان خرجت فانت طالق (که ته ووتلې نوته طلاقه یې)یاچادغلام دوهلواراده وکړه اوبل وویل که تازماغلام وواهه نوهغه ازاددی نوپه دي دووصورتونوکې داقسم یعنی طلاق اوازادي په همدي وتلویاوهلوپوري مقید کیږي حتی که ښځه فی الحال کښېنستله وروسته ووتله یادي کس غلام فی الحال ونه واهه وروسته یې وواهه نوداطلاق یاازادي نه واقع کیږي ولی چې عرفادحالف مراددهمدي ځل فعل دی اوپه قسمونوکې عرف معتبروي ،په دي ډول قسم ته یمین فورویل کیږي.

(۲۰)یعنی مذکوره بالاقسم یمین فوردی په همدي وخت پوري خاص دی لکه چې څوک چاته ووایې ،کښېنه له ماسره ناشته وخوره هغه په ځواب کې ووایې که ماخورک وکړنوزماغلام دي ازاددی نوددي حلف تعلق له همدي خورک سره دی له دي څخه علاوه که هغه خورک وکړي نونه حانث کیږي ولی چې دحالف قول دداعی ځواب دی نوالمذکورفی السوال کالمعادفی الجواب وي ګویاحالف وویل ان تغدیت معک هذه المرة فعبدي حر(که ماله تاسره په دي ځل خورک وکړنوزماغلام ازاددی).

(۲۱)اوپه حانث والی کې دغلام سورلی دمالک دسورلی په حکم کې ده مګرشرط دادی چې حالف دغلام دسورلی نیت وکړي اوغلام مقروض نه وي مثلاحالف ووایې که زه دفلان په اس سورشوم نوزماغلام ازددی اونیت یې داوکړچې که دفلان اس وي یادفلان دغلام وي نواوس که دی دفلان یادفلان دغلام په اس سورشونوحانث کیږي یعنی دده غلام ازادیږي ولی چې دحانث کیدلومداریه نیت سره دی اوحالف دغلام دسورلی نیت کړی دی ،اوکه حالف دغلام دسورلی نیت نه وي کړی نوبیادغلام په سورلی په سوریدلوسره نه حانث کیږي ولی چې دغلام سورلی که څه هم دمولی سورلی ده مګرپه عرف کې هغه دغلام سورلی ګڼل کیږي ،اوشرط داهم دی چې په دي غلام به دومره قرض نه وي کوم چې دده قیمت لره مستغرق وي ولی چې په داسې صورت کې داغلام دمولی ملک نه دی لهذاپه دي صورت کې که حالف ددي غلام په سورلی سورشونونه حانث کیږي.

## بَابُ الْيَمِينِ فِي الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ وَاللُّبْسِ وَالْكَلَامِ

دا باب دخورک څښک او اغوستلو او کلام کولو دقسم کولو په بیان کې دی

ځرنګه چې دیمین بنیاد په فعل یا ترک فعل باندې دی بیاله افعالو څخه دخول، خروج وغیره ځرنګه چې جسم ته دخورک څښک په نسبت ډیرلازم دي په دې وجه یې په پیل کې ددوئ تفصیل بیان کړاو س له دې ځایه څخه په خورک څښک وغیره باندې دقسم خوړلو تفصیل بیانوي.

(۱) لایاکل من هذه النخلة حنث بثمرها (۲) ولو عین البسر والرطب واللبن لایحنث برطبه وتمره وشیرازه (۳) بخلاف هذا الصبي وهذا الشاب وهذا الحمل (۴) لایاکل بسرا فاکل رطبا لم یحنث (۵) وفي لایاکل بسرا او رطبا او لایاکل رطبا ولا بسرا حنث بالمذنب

**ترجمه**: خورک به ونه کړي دخرماله دې درختې څخه نو حانث کیږي دهغې په میوه سره، او که یې معین کړاو مه او پخه خرما او شیدې نو نه حانث کیږي دهغې په پخه وچه او مستو سره، په خلاف ددې ماشوم دې ځوان او دې حمل، نه به خوري او مه خرما بیا یې پخه وخوړله نو نه حانث کیږي، او په دې وینا سره چې نه به خوري پخه یا او مه یا نه پخه نه او مه نو په نیم خامه خوړلو سره حانث کیږي.

**تشریح**: (۱) که چا قسم واخیست چې والله زه به ددې خرماله درختې څخه خورک ونه کړم نو د خرما د درختې په خوړلو سره نه حانث کیږي بلکه دهغې دمیوې په خوړلو سره حانث کیږي ولې چې دده دیمین نسبت درختې ته کړی دی او درخته ماکول شئ نه دی لهذا دهغې میوه به مرادوي ولې چې درخته دمیوې لپاره سبب ده لهذا درختې په ذکر کولو سره استعارة میوه مرادول صحیح دي.

(۲) که چا قسم واخیست چې والله زه به له دې بسر (او مه خرما) څخه خورک ونه کړم یعني دبسر په متعین کولو سره یې وویل والله لاآکل هذا البسر وبیا یې له رطب (تازه پخ شوي خرما) والی څخه وروسته وخوړه، یا یې درطب خرما په متعین کولو سره وویل والله زه به دا رطبه خرما ونه خورم بیا یې تمر (وچه خرما) کیدلو څخه وروسته وخوړه نو نه حانث کیږي، یا یې شیدې متعین کړي وي وویل والله زه به دا شیدې ونه څښم نو له مستو کیدلو څخه وروسته په څښلو سره نه حانث کیږي ولې چې اوم والی یا تازه پخ والی یا شیدې والی داسې صفات دي کوم چې کله داعي للیمین وي لهذا قسم به دهمدې صفت تر بقاء پورې پاتې وي له دې څخه وروسته ختمیږي.

**ف**: قاعده داده چې یمین که په کوم معین شئ په کوم خاص وصف سره وونو کتل کیږي به چې هغه وصف دیمین طرف ته داعي دی او که نه دی، که داعي وونو دهغه وصف اعتبار به کیږي، او که داعي نه وو نو صرف دنکرې په صورت کې به دوصف اعتبار کیږي دمعرفې په صورت کې نه کیږي.

(۳) که چا قسم واخیست چې والله زه به له دې ماشوم سره خبرې ونه کړم یا والله زه به له دې ځوان سره خبرې ونه کړم بیا له سپینږیر والي څخه وروسته حالف له ده سره خبرې وکړي یا یې وویل والله زه به ددې حمل غوښه ونه خورم بیا له هغه څخه پسه جوړ شواو س حالف دهغه غوښه وخوړه نو په دې دریو سره صورتونو کې حانث کیږي ولې چې دماشوم والي او ځوان والي وصف که څه هم داعي الی الیمین دی مګر له دوئ سره خبرې نه کول شرعاً ممنوع دي او شرعاً ممنوع دعادة ممنوع په څیر دي لهذا ددې صفت د داعي الی الیمین والي اعتبار نه دی شوی ځکه له سپینږیري والي څخه وروسته دحالف له ده سره په خبرو کولو حالف

حانث کیږي ،او دحمل له غوښې څخه منع کیدل دهغه دذات په وجه سره وو دهغه دصفت حمل په وجه سره نه وو ولی چې داصفت داعی الی الیمین نه دی.

(۴)که چاقسم واخیست چې والله زه به بسر (بسرېې نکره ذکر کړ) ونه خورم بیایې رطب خرما وخوړه نو نه حانث کیږي ولی چې رطب بسر نه دی لهذا محلوف علیه شئ یې نه دی خوړلی ځکه نه حانث کیږي.

(۵)که چاقسم واخیست چې والله زه به رطب (تازه پخ شوي خرما) یابسر ونه خورم یایې په دي ډول سره وویل چې نه به رطب خورم او نه به بسر خورم بیا ده بسر مذنب (هغه خرما چې دلکی له طرف څخه پخ شوي وي او نوره کچه وي) وخوړه نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد حانث کیږي ولی چې دبسر مذنب په خوړلو سره داکس دبسر او رطب دواړو خوړونکی شمارل کیږي ولی چې ددواړو خوړل مقصود دي لهذا حانث کیږي.

(٦) وَلَايَحْنَثُ بِشِرَاءِ كِبَاسَةِ بُسْرٍ فِيهَا رُطَبٌ فِي لَايَشْتَرِي رُطَبًا (٧) وَبِسَمَكٍ فِي لَايَأْكُلُ لَحْمًا (٨) وَلَحْمِ الْخِنْزِيرِ وَالْإِنْسَانِ وَالْكَبِدِ وَالْكَرِشِ لَحْمٌ (٩) وَبِشَحْمِ الظَّهْرِ فِي شَحْمًا (١٠) وَبِأَلْيَةٍ فِي لَحْمًا أَوْ شَحْمًا (١١) وَبِالْخُبْزِ فِي هَذَا الْبُرِّ

**ترجمه**: او نه حانث کیږي دکچه خرماوو دوشکې په اخیستلو سره په کوم کې چې څه پخې خرماوي هم وي په دي ویناکې چې تازه پخ شوي خرماوي به نه اخلم، او دماهي په خوړلو سره په دي ویناکې چې غوښه به نه خورم، او دخنزیر او انسان غوښه اوینه او اوجړی غوښه ده، او دشاپه وازګه سره په دي وینا کې چې وازګه به نه خورم، او دپسه په لم سره دغوښې یاوازګې په ویلو سره، او په ډوډي سره په دي ویناکې چې داغنم به نه خورم.

**تشریح**: (٦)که چاپه دي ډول قسم واخیست چې زه به پخې خرماوي وانه خلم بیاده داموخرماوو داسې وشکی واخیستی چې په هغه کې څه پخې خرماوي هم وي نوداکس نه حانث کیږي ولی چې شراء ټولوته شامله ده او اکثراومې دي اقل پخې دي وللاکثر حکم الکل.

(۷) قوله وبسمک فی لایاکل لحما ای لایحنث باکل لحم السمک الخ، یعنی که چاقسم واخیست چې والله زه به غوښه ونه خورم بیادماهی غوښه وخوړه نو استحسانانه حانث کیږي ولی چې په عرف او عادت کې دلحم لفظ ماهی ته شامل نه دی او أیمان پر عرف مبنی وي.

**ف**: دقیاس تقاضاخو داده چې حانث شې همدادامام ابویوسف او ائمه ثلاثه قول دی ولی چې په قرآن مجید کې دماهې غوښې ته لحم ویل شوي دي قال الله تعالی ﴿وَمِنْ كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا﴾، احناف ځواب ورکوي چې دماهی غوښې ته مجازالحم ویل شوي دي ولی چې لحم له وینې څخه پیدا کیږي او په ماهی کې دمائی المولد کیدلو په وجه سره وینه نشته.

(۸) دخنزیر او انسان غوښه اوینه اولری دغوښې په حکم کې ده لهذا که چاپه داسې قسم واخیست چې والله زه به غوښه نه خورم بیاهغه دخنزیر یاانسان غوښه وخوړه یایې ینه یالری وخوړی نو حانث کیږي. ولی چې په عرف کې دی غوښه خوړونکی ګڼل کیږي.

**ف**: [illegible] ردادکوفې داوسیدونکو عرف دی زموږ په عرف کې هغه ته غوښه خوړونکی نه ویل کیږي ځکه نه حانث کیږي وعلیه الفتوی لمافی الدرالمختار: ولحم الانسان والکبد والکرش ......والخنزیر لحم هذافی عرف اهل الکوفة امافی

عرفالاكمافي البحر قال العلامة ابن عابدين :لان أكله ليس بمتعارف ومبنى الايمان على العرف قال وهو الصحيح وفي الكافي وعليه الفتوى (الدر المختار مع الشامية: ٣/٩٩)

(٩) قوله وبشحم الظهر في شحمااى لايحنث باكل شحم الظهر ،يعني كه چاپه دي ډول قسم واخيست چې والله زه به وازګه ونه خورم بيايې دشا وازګه وخوړه نو دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد نه حانث كيږي ولې چې دوازګې اطلاق په هغه وزاګې كيږي كومه چې په نس كې وي اودشا وازګې ته په عرف كې وازګه نه ويل كيږي بلكه دالحم سمين دي دصاحبينو په نزد حانث كيږي ولې چې دشا وازګه په حقيقت كې وازګه ده ځكه چې په اوږه اينو دلو سره داهم دنورې وازګې په شان ويلې كيږي .

ف:دامام ابو حنيفه رحمه الله قول راجح دى لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد:قال ابن الهمام انه صحح غيره واحدقول الامام ابى حنيفه (هامش الهداية :٢/٣٦٧)وقال العلامة ابن عابدين قال في البحرقال القاضي الاسبيجابي ان اريدبشحم الظهرشحم الكلية فقولهماالظهر وان اريدبه شحم اللحم فقوله ظهر (ردالمحتار:٣/١٠٠)

(١٠) قوله وبالية في لحماوشحمااى لايحنث باكل الية في حلفه لاياكل لحما اولاياكل شحما ،يعني كه چاداسې قسم واخيست والله زه غوښه ياچربي ونه خورم بيا ده دپسه لم وخوړی نو نه حانث كيږي ولې چې لم له غوښې اوچربې څخه جلا بله نوعه ده ځكه نو لم خوړنكي ته چربي ياغوښه خوړونكې نه ويل كيږي .

(١١) قوله وبالخاو في هذا البر اى لايحنث باكل الخاو في حلفه لاياكل من هذا البر ،يعني كه چا قسم واخيست چې والله زه به له دي غنمو څخه خورک ونه كرم بيايې دهغو ډوډی وخوړه نو نه حانث كيږي دادامام ابو حنيفه رحمه الله مسلک دی ولې چې غنمو له حقيقت مستعمله شته ځكه چې غنم په نيني كولو اوپه چيچلو سره خوړل كيږي او دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد حقيقة مستعمله له مجاز متعارف څخه اولى دى . دصاحبينو په نزد حانث كيږي ولې چې دصاحبينو په نزد مجاز متعارف ترحقيقة مستعمله اولى دى .

ف:دامام صاحب قول راجح دى لمافي الدر المختار:(ولا) يحنث (بخبزاو دقيق اوسويق في )حلفه لاياكل (هذا البر الافي القضم من عينها)قال العلامة ابن عابدين فان لفظ اكل الحنطة يستعمل حقيقة في أكل عينهافان الناس يقلونها وياكلون فهواولى من المجاز المتعارف (الدر المختار مع الشامية:٣/١٠٠)

(١٢) وَفِي هذَا الدَّقِيقِ حَنِثَ بِخُبْزِهِ لَا بِسَفِّهِ (١٣) وَالْخُبْزُ مَا اعْتَادَهُ بَلَدُهُ (١٤) وَالشِّوَاءُ وَالطَّبِيخُ عَلَى اللَّحْمِ (١٥) وَالرَّأْسُ مَا يُبَاعُ فِي مِصْرِهِ (١٦) وَالْفَاكِهَةُ التُّفَّاحُ وَالْبِطِّيخُ وَالْمِشْمِشُ لَا الْعِنَبُ وَالرُّمَّانُ وَالرُّطَبُ وَالْقِثَّاءُ وَالْخِيَارُ

**ترجمه** :اوپه دي ويناكې چې دا اوړه به نه خورم حانث كيږي دهغوپه ډوډی سره نه په وچو اوړوخولی ته اچولو سره، اوډوډي هغه ده چې دهغې عادي وي اهل ښار ،اوكباب شوي اوپخ شوي په غوښه محمول دي اوله سر څخه هغه مراد دی كوم چې خرڅيږي په دي ښار كې ،اوميوه سيب اوهندوانه اوزردآلو ده نه انګور او انار اوتازه خرماوي او اوچمبر خيال اوبادرنګ.

**تشريح** :(١٢) قوله وفي هذا الدقيق حنث بخبزه اى لوحلف لاياكل هذا الدقيق حنث باكل خبزه ،يعني كه چاقسم واخيست چې والله زه به له دي اوړه څخه خورک ونه كرم بيايې دهغو اوړو ډوډی وخوړه نو حانث كيږي ولې چې بعينه اوړه خوړل متعارف نه دي لهذا قسم به هغه شئ ته راجع كيږي كوم چې له اوړو څخه جوړيږي ،اوكه ده وچ اوړه خولې ته واچول نو نه حانث كيږي ولې چې له اوړو څخه مجاز ډوډي مراد ول متعين شو لهذا محلوف عليه ډوډی ده نه اوړه .

(۱۳)له ډوډۍ څخه مراد د ښار معتاده ډوډۍ ده يعنی که چا قسم واخيست چې والله زه ډوډۍ نه خورم ،نو د حالف د ښار والا چې عادتاً کومه د ډوډۍ په ډول خوري پر هغه دا قسم واقع دی ولی چې په باب دقسم کې عرف معتبر دی نو که مذکوره بالا قسم اخيستونکې په غراق کې د وريجو ډوډۍ وخوره نو نه حانث کيږي ولی چې په عراق کې د وريجو د ډوډۍ د خوړلو عادت نشته .

(۱۴)له کباب شوي اوپخ شوي څخه دقسم اخيستلو په صورت کې دا قسم په غوښه واقع کيږي يعنی که چا قسم واخيست چې والله زه به کباب شوی اوپخ شوی ونه خورم نو دا قسم صرف په غوښه واقع کيږي په بانجن وګاځرو وغيره باندي نه واقع کيږي ولی چې له مطلق کباب شوي څخه په عرف کې کباب شوي غوښه مراديږي همدا شان که چا قسم واخيست چې والله زه به طبيخ (پخ شوی )ونه خورم نو دا قسم استحساناً پرغوښه واقع کيږي اعتبار اللعرف .اوکه چا قسم واخيست چې والله زه به سرونه خورم نو د چوغکې ،يا ملخ وغيره په سرونو باندي دا قسم نه واقع کيږي بلکه دا قسم په هغه سر واقع کيږي کوم چې په تنورونو کې پخيږي اوپه ښار کې خرڅيږي ولی چې همدا متعارف دي .

(۱۵)اوله ميوي څخه قسم په سيب ،هندوانه اوزردآلو واقع کيږي يعنی که چا په دي ډول سره قسم واخيست چې والله زه به ميوه ونه خورم نو په دقسم سره په دسيب اوهنداونې اوخوبانې وغيره په خوړلو حانث کيږي ولی چې فاکهه هغه ده کومه چې له خوراک څخه وروسته دتلذذ لپاره خوړل کيږي اودا معنی په دي مذکوره شيانو کې متحققه ده البته دانګورو ، انارو ،پخو خرماو ،چمبر خيال اوبادرنګ وغيره په خوړلو سره نه حانث کيږي ولی چې په دي شيانو کې د فاکهه معنی نشته ځکه چې انګور، انار اوخرماوي دغذاء يادواء په ډول استعماليږي په دي وجه دتفکه په معنی کې قصور پيدا شو او بادرنګ وغيره ساويانې په ترکاريو کې داخل دي لهذا له ميوي څخه دقسم اخيستلو په صورت کې په دي شيانو سره نه حانث کيږي.

ف :دصاحبينو او ائمه ثلاثه په نزد انګور ،انار اوخرماوي په فاکهه کې داخل دي ولی چې په دي شيانو کې تفکه معنی موجوده ده ،ويل کيږي چې دا اختلاف دزمانې اختلاف دی ددليل اوبرهان اختلاف نه دی ، نو اهل عرف چې کوم شئ په ميوه کې شمارل کړي هغه په ميوه کې داخل دی اوکوم چې په ميوه کې شمار نه کړي هغه له ميوي څخه خارج دی .

(۱۶ )وَالْإِدَامُ مَا يُصْطَبَغُ بِهِ كَالْخَلِّ وَالْمِلْحِ وَالزَّيْتِ لَا اللَّحْمِ وَالْبَيْضِ وَالْجُبْنِ (۱۷ )وَالْغَدَاءُ الْأَكْلُ مِنَ الْفَجْرِ إِلَى الظُّهْرِ وَالْعَشَاءُ مِنْهُ إِلَى نِصْفِ اللَّيْلِ (۱۸ )وَالسَّحُورُ مِنْهُ إِلَى الْفَجْرِ

**ترجمه** :اوسالن هغه دی په کوم کې چې ډوډۍ لنديږي لکه سرکه اومالګه اودزيتون تيل نه غوښه اوهګۍ اوپنير ،اوغداء له سهار څخه ترماپښين پوري خوراک دی اوعشاء ترنصف شپې پوري خوراک دی ،اوسحور له نصف شپې څخه ترطلوع فجر پوري خوراک دی .

**تشريح**:(۱۶)که چا په دي ډول قسم واخيست چې والله زه به سالن ونه خورم نوله دي څخه هغه مراد دی په کوم چې ډوډۍ په لنده ولو اوګډولو سره خوړل کيږي مثلاً سرکه ،مالګه اودزيتون تيل وغيره نو دمذکوره قسم اخيستلو په صورت کې د دي شيانو په خوړلو سره حانث کيږي ولی چې ادام هغه شئ دی کوم چې په تبعيت سره خوړل کيږي اوتبعيت په اختلاط کې دی يادا چې تنهاء به نه خوړل کيږي. اود کباب شوي غوښه

مالګي او پنيرپه خوړلوسره نه حانث کيږي ولې چې داشيان ادام نه دي ځکه چې په دوئ سره ډوډۍ نه لنديږي اوپه تبعيت سره نه خوړل کيږي بلکه په مستقل ډول سره خوړل کيږي ،په مالګه که څه هم ډوډۍ نه لنديږي مګرپه خوله کې په اچولوسره ويلې کيږي اومخلوطيږي لهذا مالګې ته ادام ويل صحيح دي .

(۱۷)که چاقسم واخيست چې والله زه به غداء نه خورم نوله غداء څخه مرادهغه خورک دی کوم چې له طلوع فجرڅخه بياترماپښين پورې په دامنځ کې خوړل کيږي لهذاپه دي مابين کې که حالف خورک وکړنوحانث کيږي ،اوکه يې وويل والله زه به عشاء نه خوزم نوله عشاء څخه مرادهغه خورک دی کوم چې له ماپښين څخه بياترنصف شپې پورې په دامنځ کې خوړل کيږي لهذاکه حالف په دي مابين کې خورک وکړنوحانث کيږي .

(۱۸)اوکه يې وويل والله زه به سحری ونه خورم نوله سحری څخه مرادهغه خورک دی کوم چې له نيمې شپې څخه ترطلوع فجرپورې په دامنځ کې خوړل کيږي ،سحورله سحرڅخه دي په قريب سحرپې اطلاق کيږي کوم چې له نصف الليل څخه دی لهذاکه حالف له طلوع فجرڅخه نيولې بياترطلوع فجر پورې خورک وکړنوحانث کيږي .

(۱۹)إن لَبِستُ او أكلتُ او شرِبتُ ونوَى معَيّنًا لم يُصدّق أصلًا (۲۰) ولو زادَ ثوبًا او طَعامًا او شرابًا دِينَ (۲۱) لايشرَبُ من دِجلةَ على الكَرعِ (۲۲) بخلافِ من ماءِ دِجلةَ

**ترجمه** :که زه واغوندم ياوخورم ياوڅښم اودکوم خاص شئ نيت يې وکړنوبالکل دده تصديق نه کيږي ، اوکه يې اضافه کړثوب ياطعام ياشراب نوديانة تصديق کيږي ،له دجله څخه به ونه څښي نوداپه خوله لګولوسره په څښلو محمول دی ،په خلاف ددې ويناچې ددجلې اوبه به نه څښم .

**تشريح** :(۱۹)که چاداسې وويل چې که زه واغوندم ياوخورم ياوڅښم نوزماغلام ازاددی اوس دي وايې چې مادفلان خاص شئ داغوستلوياخوړلوياڅښلو نيت کړی دی نودده دنيت اعتباربه نه کيږي نه ديانة اونه حکما،ولې چې نيت په ملفوظ کې صحيح کيږي حال داچې دلته ثوب وغيره صراحة ملفوظ نه دي اقتضاء به يې مقدربولو اوپه مقتضی کې عموم نه وي لهذادتخصيص نيت لغوه دی .

(۲۰)هوکه ده دثوب وغيره اضافه وکړه مثلاداسې يې وويل چې ان لبست ثوبااواکلت طعامااوشربت شرابافعبدی حر)(يعنی که ماجامه واغوستله يامې خورک وخوړی يامې کوم دڅښک شئ وڅښی نوزما غلام ازاددی )ددې قول په وخت کې ده دکوم خاص شئ نيت وکړنوديانة به دده تصديق کيږي ولې چې په محل شرط کې نکره عامه وي لکه نکره په تحت النفی کې ،لهذادتخصيص نيت صحيح دی او حکما اوس هم دده اعتبارنه کيږي ولې چې دده دانيت خلاف ظاهردی .

(۲۱)که چاقسم واخيست چې والله زه به له دجله (دعراق مشهوردرياب دی )څخه ونه څښم ، نوله دي څخه په خوله اينبودلوسره څښل مراددی نوکه ده دخولې په اينبودلوسره وڅښلې نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدحانث کيږي ولې چې په خوله اينبودلوسره څښل حقيقت مستعمله دی اودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزديمين پرحقيقت مستعمله محمول وي اوکه په لوښې کې اوبه راواخيستې نونه حانث کيږي ولې چې حقيقة محلوف عليه نه ده موجودشوی لهذانه حانث کيږي، دصاحبينوپه نزدپه دواړوصورتونوکې حانث

کیږي مبنی اختلاف هغه ده چې دامام صاحب په نزدله مجازمتعارف څخه حقیقة مستعمله اولی دی اودصاحبینوپه نزدعموم مجازاولی دی.

**ف**:دامام صاحب قول راجح دی لماقال ابراهیم ابن محمدالحلبی:ولفی المجتبی,ولجنس هذه المسائل اصل حصن وهوانه متی عقد یمینه علی شئ لیس حقیقة مستعملة وله مجازمتعارف یحمل علی المجازاجماعاکمااذاحلف لایاکل من هذه النخلة وان کانت له حقیقة مستعملة یحمل علی الحقیقة اجماعاکمن حلف لایاکل لحماوان کانت له حقیقة مستعملة ومجازمتعارف فعنده یحمل علی الحقیقة وعندهمایحمل علیهمالابطریق الجمع بین الحقیقة والمجازولکن بمجازیعم افرادهماوهوالاصح(مجمع الانهر:۲/۳۰۰,کذافی البحرالرائق:۴/۳۲۹)

(۲۲)قوله بخلاف من ماء دجلة ای لوحلف لایشرب من ماء دجلة فانه یحنث بای وجه شرب ,یعنی که چاقسم واخیست چې والله زه ددریاب دجله اوبه ونه څښم بیایې ددجلې اوبه په لوښې کې راواخیستې اووي څښلې نوحانث کیږي ولی چې داقسم په داسې اوبومنعقدشوی دی کومې چې دجلې ته منسوب دي نوپه لوښي کې له راخیستلوڅخه وروسته هم هغه اوبه ددجلې اوبه دي.

(۲۳)إن لم أشرب ماء هذا الكوز اليوم فكذا ولا ماء فيه أو كان فصب أو أطلق ولا ماء فيه لا يحنث (۲۴)وإن كان فصب حنث (۲۵)حلف ليصعدن السماء أو ليقلبن هذا الحجر ذهبا حنث للحال

**ترجمه**:که ونه څښم ددي کوزي اوبه نن نوداسې ده حال داچې په دي کې اوبه نشته یااوبه خووي مگرچېه یې کړي یاهغه مطلق وواېې اوپه دي کې اوبه نه وي نونه حانث کیږي ,اوکه اوبه وي چپه یې کړي نوحانث کیږي ,قسم یې واخیست چې ضروربه اسمان ته خیږي یابه دادبره سره زرجوړوي نوفی الحال حانث کیږي.

**تشریح**:(۲۳)که چاداسې وویل چې که مانن ددي کوزي اوبه ونه څښلې نوزماغلام ازاددی اوس حال دادی چې په دي کوزي کې اوبه نشته یااوبه وي مگرده چپه کړي ,یاده مطلق وویل چې که مادددي کوزي اوبه وڅښلې نوزماغلام ازاددی یعنی لفظ الیوم یې اضافه نه کړاوپه کوزه کې اوبه هم نشته نوپه دي ټولوصورتونوکې دطرفینوپه نزدحالف نه حانث کیږي ولی چې دیمین مطلق عن الوقت دانعقادلپاره شرط دادی چې دیمین تکمیل متصوروي که تکمیل یمین متصورنه وي نویمین نه منعقدکیږي اوپه مذکوره بالاصورتونوکې تکمیل یمین متصورنه دی لهذانه حانث کیږي ,دامام ابویوسف رحمه الله په نزددتکمیل یمین متصوروالی شرط نه دی لهذاپه مذکوره صورتونوکې حالف حانث کیږي.

(۲۴)اوکه چاداسې وویل چې که زه ددي کوزي اوبه ونه څښم نه زماغلام ازاددی یعنی دالیوم قیدیې ونه لګاووا اوپه کوزه کې اوبه هم شته مگرده اوبه چپه کړي نوحانث کیږي اوکفاره به ورکوي ولی چې له یمین څخه په فاغیدلوسره په ده دیمین پوره کول واجب وواوتکمیل یمین متصورهم وواوس کله چې محلوف علیه فوت شونودیمین پوره کیدل فورت شولهذاحانث کیږي.

(۲۵)که چاقسم واخیست چې والله زه به اسمان ته وخیږم یاوالله زه به دادبره سره زرجوړکړم نوداقسم منعقدکیږي ولی چې تکمیل یمین متصوردی ځکه چې فرشتې اسمان ته خیږي اوډبره دالله تعالی په قدرت سره سره زرکیدای شي لهذایمین منعقدکیږي اوله قسم څخه وروسته متصل حانث کیږي ولی چې حالف عادة عاجزدی لهذافی الحال حانث کیږي.

(۲۶) لَا يُكَلِّمُهُ فَنَادَاهُ وَهُوَ نَائِمٌ فَأَيْقَظَهُ (۲۷) أَوْ إِلَّا بِإِذْنِهِ فَأَذِنَ لَهُ وَلَمْ يَعْلَمْ فَكَلَّمَهُ حَنِثَ (۲۸) لَا يُكَلِّمُهُ شَهْرًا فَهُوَ مِنْ حِينِ حَلَفَ (۲۹) لَا يَتَكَلَّمُ فَقَرَأَ الْقُرْآنَ أَوْ سَبَّحَ لَمْ يَحْنَثْ (۳۰) يَوْمَ أُكَلِّمُ فُلَانًا فَعَلَى الْجَدِيدَيْنِ فَإِنْ نَوَى النَّهَارَ خَاصَّةً صُدِّقَ (۳۱) وَلَيْلَةَ أُكَلِّمُهُ عَلَى اللَّيْلِ

**ترجمه** :له ده سره به خبري ونه کړي بیایې هغه ته اواز وکړه په داسې حال کې چې هغه ویده وو نو یې هغه راویش کړ، یایې وویل چې له ده سره به خبري ونه کړي مګر دده په اجازت سره نو ده اجازت ورکړ حال دا چې دی په خبر نه وو نو له یې ده سره خبري وکړي نو حانث کیږي ،له ده سره به خبري ونه کړي تر یوې میاشتې پورې نو دا قسم له و خت څخه شروع کیږي، او قسم یې واخیست چې خبري به نه کوم بیایې قرآن یا تسبیح وویل نو نه حانث کیږي ،کوم وخت چې له فلانکی سره خبري وکړم، نو دا په شپه اورځ دواړو محمول دی او که یې قصد وکړ د خاص ورځې نو تصدیق به یې کیږي ،او کومه شپه چې له فلان سره خبري وکړم په شپه محمول دی

**تشریح** :(۲۶)که چا قسم واخیست چې والله زه به له فلان سره خبري ونه کړم بیا هغه ویده وو حالف هغه ته ورېغ کړ چې په دې سره هغه راویش شو نو حالف حانث کیږي ولی چې حالف له ده سره کلام وکړ او هغه د هغه غوږ ته هم ورسید ولیکن هغه صرف د خوب په وجه ونه فهمو ی.

(۲۷)قوله او الاباذنه الخ ای او حلف لایکلمه الاباذنه الخ ،یعنی که چا قسم واخیست چې والله زه به له فلان سره خبري ونه کړم مګر دده په اجازه سره ،بیا ده اجازت ورکړ مګر حالف په اجازت خبر نه شو ،او له ده سره یې خبري وکړي نو حانث کیږي ولی چې اذن له آذن څخه مشتق دی کوم چې اګاه کولو په معنی دی او اګاه کول بغیر له اوریدلو او خبریدلو نه شي متحقق کیدلی حال دا چې ده هیڅ نه دي اوریدلي لهذا په دې باره کې داسې نه شي ویل کیدلی چې ده ته اجازت ورکړل شوی دی.

(۲۸)که چا په دې ډول قسم واخیست چې والله زه به له فلان سره تر یوې میاشتې پورې خبري ونه کړم نو دا میاشته له هغه وخت څخه شروع کیږي کوم وخت چې ده قسم اخیستی دی ولی چې دا خبره دی دغضب په حالت کې کوي نو دده دا حالت دال دی چې د قسم سره متصله زمانه په دې زمانه کې شامله ده په کومه کې چې د خبري نه کولو قسم اخیستی دی.

(۲۹)که چا قسم واخیست چې والله زه به خبري ونه کړم بیا ده قرآن مجید تلاوت کړ یایې تسبیح وویلې نو نه حانث کیږي ولی چې قران مجید تلاوت کونکی ته متکلم نه بلکه قاری ویل کیږي او تسبیح ویونکی ته مسبح ویل کیږي ،بعض حضرات وایي چې که له لمانځه څخه د باندې یې وویل نو حانث کیږي .

**ف**:اول قول راجح دی لمافی الدر المختار:(حلف لایتکلم فقرا القران اوسبح فی الصلوة لایحنث )اتفاقا وفی فعل ذالک خارجها حنث علی الظاهر) الی ان قال ,ورجح فی الفتح عدمه مطلقا وعلیه الدرر والملتقی بل فی البحر عن التهذیب ان لایحنث بقراة الکتب فی عرفنا انتهی (الدر المختار علی هامش ردالمحتار:۳/۱۱۳)

(۳۰)که چا قسم داسې واخیست چې زه په کومه ورځ خبري وکړم نو زما غلام ازاد دی نو په دې صورت کې که دی په ورځ کې خبري وکړي نو هم دده غلام ازادیږي او که په شپه کې خبري وکړي نو هم دده غلام ازادیږي ولی اسم یوم چې کله له غیر ممتد فعل سره مقترن وي نو له ده څخه مطلق وخت مراد وي ،شپې او ورځې ته جدیدین د دوئ د تجدد په وجه سره ویل شوي دي ،او که ده د مذکوره بالا قسم پر وخت خاص په

ورځ کې د خبري کولو نیت کړی وو نو ده ته تصدیق به کیږي ولی چې ده دخپل کلام د حقیقت نیت کړی دی ،له امام ابویوسف رحمه الله څخه مروی ده چې قضاء دده تصدیق نه کیږي ولی چې ده دخلاف ظاهر او خلاف متعارف نیت کړی دی.

(۳۱) قوله وليلة اكلمه على الليل اى لو قال ليلة اكلم فلانا فعبدى حر فهو على الليل ،یعنی که چا داسې وویل چې زه له فلان سره په کومه شپه خبري وکړم نو زما غلام ازاد دی نوله دې څخه صرف شپه مراده ده لهذا په شپه کې په خبري کولو سره دی حانث کیږي ولی چې لفظ دلیل دشپې په تیاره کې حقیقت دی لکه نهار چې دورځې په رڼاکې حقیقت دی او په حالت افرادکې په مطلق وخت کې مستعمل نه دی لهذا ورځې ته نه شاملیږي.

(۳۲) إن كَلَّمْتُهُ إلَّا أَنْ يَقْدَمَ زَيْدٌ او حتى او إلَّا أَنْ يَأْذَنَ او حتى فَكَذَا الْكَلَامُ قبل قُدُومِهِ أَوْ إِذْنِهِ حَنِثَ وَ بَعْدَهُمَا لَا (۳۳) وَإِنْ مَاتَ زَيْدٌ سَقَطَ الْحَلِفُ (۳۴) لَا يَأْكُلُ طَعَامَ فُلَانٍ او لَا يَدْخُلُ دَارَهُ او لَا يَلْبَسُ ثَوْبَهُ او لَا يَرْكَبُ دَابَّتَهُ او لَا يُكَلِّمُ عَبْدَهُ إنْ أَشَارَ وَزَالَ مِلْكُهُ وَفَعَلَ لَا يَحْنَثُ (۳۵) كَالْمُتَجَدِّدِ (۳۶) وَإِنْ لم يُشِرْ لَا يَحْنَثُ بَعْدَ الزَّوَالِ (۳۷) وَحَنِثَ بِالْمُتَجَدِّدِ

**ترجمه**: که ماله ده سره خبري وکړي مګر داچې زید راشي یاتر څو پورې یامګر داچې اجازه راکړي یاترڅو پوري نو داسې دی بیایې خبري وکړي دزید له راتلو یاله اجازې څخه وړاندې نو حانث کیږي او له دې څخه وروسته نه حانث کیږي ،او که زید وفات شو نو قسم ختمیږي ،نه به خوري دفلان خوړک یابه داخل نه شي دفلان کورته یابه نه اغوندي دفلان جامې ،یابه سور نه شي دفلان په سورلی ،یابه خبري ونه کړي دده له غلام سره نو که یې په اشاره سره متعین کړاو دده ملک زائل شو بیا ده داوکړل نو نه حانث کیږي لکه په نوي اخیستل شوی سره ،او که یې اشاره ونه کړه نو نه حانث کیږي له زوال ملک څخه وروسته ، او حانث کیږي په متجدد کې.

**تشریح**: (۳۲) که چا داسې وویل چې که ماله فلان سره خبري وکړي مګر داچې زید راشي ،یایې داسې وویل چې که ماله فلان سره خبري وکړي ترڅو چې زید راشي ،یایې داسې وویل چې که ماله فلان سره خبري وکړي مګر داچې زید اجازت راکړي ،یاترڅو چې زید اجازت راکړي نو زما غلام ازاد دی بیا دزید له راتلو څخه وړاندي یادزید له اجازې ورکولو څخه وړاندي ده له فلان سره خبري وکړي نو داکس په دې څلور واړه صورتونو کې حانث کیږي ولی چې یمین باقی دی ،او که دزید له راتلو یا اجازې ورکولو څخه وروسته ده له فلان سره خبري وکړي نو نه حانث کیږي ولی چې له فلان سره ترخبرو کولو وړاندي یمین انتهاء (پای) ته رسیدلی دی.

(۳۳) او که په لوړ ذکر شوي صورت کې زید وفات شو نو یمین ساقطیږي ولی چې یمین دزید په راتلو یا اجازې ورکولو سره پای ته رسیږي څرنګه چې اوس دزید راتګ یا اجازت ورکول ممکن نه دي لهذا برفی الیمین متصور نه دی کوم چې دانعقاد یمین لپاره شرط دی ځکه نو یمین ساقطیږي.

(۳۴) که چا قسم واخیست چې والله زه به دفلان ډوډۍ ونه خورم یادفلان کورته به داخل نه شم ،یابه دفلان جامه وانه غوندم ،یابه دفلان په څاروی سور نه شم ،یابه دده له غلام سره خبري ونه کړم نو که حالف ددې شیانو طرف اشاره کړي وي مثلاً ویلي وي چې داډوډۍ به نه خورم بیا مذکوره اشیاء دفلان له ملک څخه ووتل اوس حالف دا خوړک وخوړی یادې کور ته داخل شو یایې هغه جامه واغوستله یا په هغه

ځاروی سورشویایې له هغه غلام سره خبري وکړي نوپه دې ټولو صورتونو کې نه حانث کیږي ولی چې دایمین په داسې شیانو منعقدشوی دی کوم چې دفلان طرف ته منسوب دي او اضافت معتبر دی ولی چې داشیان ذاتامقصودبالهجران نه دي بلکه دمالک طرف ته دمنسوبیدلوپه وجه یې قصددهجران کیږي لهذا دفلان طرف ته داضافت دباقی نه پاتې کیدلوپه وجه یمین باطلیږي.

(۳۵)قوله کمالی المتجددای کمالایحنث ان تجددالملک فی مثل هذه الاشیاء ،یعنی په لوړذکرشویو صورتونوکې حالف نه حانث کیږي لکه چې دفلان د نویواخیستل شویوشیانوپه استعمالولوسره چې نه حالف نه حانث کیږي مثلاحالف قسم واخیست چې والله زه به دفلان له دې غلام سره خبري ونه کړم بیافلان یوبل غلام واخیست اوله هغه سره حالف خبري وکړي نوحالف نه حانث کیږي ولی چې حالف دحلف په وخت کې اشاره کړي وه اوشاره په تعریف کې کمال په وجه سره معتبره ده لهذاله مشارالیه غلام سره په خبروکولوحانث کیږي ،اوځرنګه چې ده دنوي غلام طرف ته اشاره نه ده کړي لهذاله هغه سره په خبروکولونه حانث کیږي.

(۳۶)اوکه په پورته ذکرشوي صورت کې حالف مذکوره شیانوته اشاره نه وه کړي بیاله هغوشیانوڅخه دمالک ملک زائل شواوس حالف هغه شیان استعمال کړل نوحانث کیږي مثلاحالف قسم اخیستی وو چې والله دفلان له غلام سره به خبري ونه کړم بیافلان خپل غلام خرځ کړاوس حالف له هغه سره خبري وکړي نونه حانث کیږي ولی چې دانعقادیمین لپاره ددې شیانودفلان طرف ته منسوب والی شرط دی لهذادشرط دمعدوم والی په وجه نه حانث کیږي.

(۳۷)البته په دې صورت کې دنویواخیستل شویوشیانوپه استعمالولوسره حانث کیږي ولی چې دحانث والی شرط (یعنی ددې شیانودفلان طرف ته منسوب والی )دلته موجوددی په دې وجه حالف حانث کیږي ،ځرنګه چې په دې صورت کې دحالف له طرف څخه ددې شیانوطرف ته اشاره نه ده شوي لهذاداصورت په حکم کې له تیرشوی صورت څخه مختلف دی.

(۳۸)وفي الصَّدِيقِ وَالزَّوْجَةِ حَنِثَ في الْمُشَارِ إلَيْهِ بَعْدَ الزَّوَالِ (۳۹)وفي غَيْرِ الْمُشَارِ لَا (۴۰)وَحَنِثَ بِالْمُتَجَدِّدِ (۴۱)لَا يُكَلِّمُ صَاحِبَ هذا الطَّيْلَسَانِ فَبَاعَهُ فَكَلَّمَهُ حَنِثَ

**ترجمه** :اودمتعین دوست اوښځې په صورت کې حانث کیږي ددوستې اونکاح له زوال څخه وروسته ، اوپه غیرمعین کې نه ،اوحانث کیږي په نوی دوست اوښځې سره ،خبري به ونه کړم ددی څادرله مالک سره بیاهغه څادر خرځ کړاوحالف له هغه سره خبري وکړي نوحانث کیږي.

**تشریح** :(۳۸)قوله وفی الصدیق الخ ای لوحلف لایکلم صدیق فلان هذاحنث بعدزوال الصداقة ،یعنی که چاپه اشاره کولوسره وویل چې زه به دفلان له دې دوست سره یادفلان له دې ښځې سره خبري ونه کړم نودفلان له خپل دې دوست سره ددوستې ختمیدلوڅخه وروسته اودې ښځې ته له طلاق ورکولوڅخه ورو. ته که هغه له دوئ سره خبري وکړي نوحانث کیږي ولی چې دفلان طرف ته اضافت صرف دپیږندنې لپاره دی مقصودبالهجران په خپله دفلان دوست اوښځه ده ځکه چې دفلان له دوست اوښځې څخه دده ذاتی نفرت دی اوذات له اعتبارسره دفلان طرف ته داضافت وصف لغودی.

(۳۹)قوله ولى غير المشار اليه لاى لوقال لااكلم صديق فلان اوروجه ولم يشر اليهمافلايحنث بعدزوال الصداقة والزوجية ،
يعنى كه په پورته ذكرشوى صورت كې حالف دفلان ددوست اوښځې طرف ته اشاره نه وه كړې نودهغوله دوستې اونكاح ختميدلو څخه وروسته كه حالف له هغوى سره خبرې وكړې نونه حانث كيږي ولى چې دلته دوه احتماله دي كيداى شي چې دفلان له دوست اوښځې سره ترک تكلم لعينه وي يعنى په خپله له دوئ څخه دنفرت په وجه وي اوكيداى شي چې ترک تكلم لغيره وي يعنى ددوست ياښځې په وجه سره نه وي بلكه دفلان په وجه وي نودشک دپيدا كيدلو په وجه نه حانث كيږي .
(۴۰)اوكه حالف بغيرله اشارې وويل چې دفلان له دوست ياښځې سره به خبرې ونه كړم نوكه ده دفلان له نوي دوست يانوې ښځې سره خبرې وكړې نوحانث كيږي ولى چې دحنث شرط (يعنى ددوست اوښځې دفلان طرف ته منسوب والى) دلته متحقق شو .
(۴۱)كه چاقسم واخيست چې والله زه به ددې څادروالاسره خبرې ونه كړم بياهغه څادرخرڅ كړاوس حالف له هغه سره خبرې وكړې نوحانث كيږي ولى چې دڅادرپه وجه څوک له چاسره دښمنې نه كوي لهذا داضافت صرف دتعريف لپاره دى مقصودبالحلف دڅادروالاذات دى .

(۴۲)الزَّمَانُ وَالْحِينُ وَمُنَكَّرُهُمَا سِتَّةُ أَشْهُرٍ (۴۳)وَالدَّهْرُ وَالْأَبَدُ الْعُمْرُ (۴۴)وَدَهْرٌ مُجْمَلٌ (۴۵)وَالْأَيَّامُ وَأَيَّامٌ كَثِيرَةٌ وَالشُّهُورُ وَالسُّنُونَ عَشَرَةٌ (۴۶)وَمُنَكَّرُهَا ثَلَاثَةٌ

**ترجمه** :اولفظ دالزمان اوالحين اوددوئ دواړودنكرومدت شپږمياشتې دى ،اودالدهراوالابدمدت ټول عمردى، اودهر (نكره )مجمل دى ،اوله الايام اوايام كثيرة اوالشهوراوالسنون څخه لس مراددي ، اوددوئ له نكروڅخه درې مراددي .

**تشريح** :(۴۲)كه چاپه عربې ژبه قسم واخيست چې والله لااكلم فلاناالزمان اوالحين (حين اومان يې معرف ذكركړل) ياوالله لااكلم فلانازماناوحينا(يعنى دواړه يې نكره ذكركړل )نوله دې څخه دقسم له وخته شپږمياشتې مراددي ولى چې له حين څخه كله مدت قليل اوكله څلويښت كاله اوكله شپږمياشتې مرادوي نوشپږمياشتې درميانه مده ده وخيرالامور اوسطهالهذاداطلاق په وخت كې همدامرادوي ، اومعرف اونكره دواړه برابردي ،اودزمان لفظ دحين په معنى سره اسعماليږي ،مارأيتک مذزمان ،په معنى دمارأيتک مذحين دى لهذاله زمان څخه به هم شپږمياشتې مرادوي .
(۴۳)اوكه حالف لفظ الدهرووايومثلاوي ويل والله لااكلمه الدهرياپې لفظ الابدذكر كړمثلاوي ويل والله لااكلمه الابد نوله دې څخه ټول عمرمرادى ولى چې الدهراوالابدچې كله معرف باللام وي نوله دې څخه دعربوداستعمال مطابق ټول عمرمراديږي .
(۴۴)يعنى لفظ دهر(منكر)دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدمجمل دى نوكه چاوويل والله لااكلمه دهرنودامجمل دى هيڅ مقداريې معلوم نه دى ولى چې دلفظ دهرمنكراستعمال په زمانه طويله ياقصيره يااوسطه كې ثابت نه دى ،دصاحبينو رحمهماالله تعالى قول دادى چې لفظ دهرنكره هم دمعرفه په شان دشپږمياشتولپاره دى حال داچې امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي لاادرى الدهر(ماته معلومه نه ده چې دهرڅه دى).

ف: دصاحبينو قول راجح دی لمافی الدر المختار: (دهر) منكر (لم يدر والاقو كالحين) وغير خاف انه اذالم يدرعن الامام شیٔ فی مسئلة وجب الافتاء بقولهما لهر (الدر المختار: ۱۱۸/۳)

(۴۵) اوله الايام، اوايام كثيرة څخه لس مراددي يعنی كه چاقسم واخيست چې والله لااكلمه الايام ، ياېې وويل والله لااكلمه اياماكثيرة نودا قسم دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپه لسو ورځو واقع كيږي ولی چې دالايام جمع ذكركړي دي نوپه لفظ جمع سره چې كوم انتهائي عدد ذكركيږي هغه به مرادوي كوم چې لس دی (يعنی عرب ثلثة ايام تاعشرة ايام وايې له دي څخه وروسته جمع نه بلكه مفرذكركوي مثلاً احدعشريوما)، اودصاحبينوپه نزدله الايام څخه مراداوه ورځې دي .

ف: دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدر المختار: (الايام وايام كثيرة والشهور والسنون)..... (عشرة) من كل صنف، قال العلامة ابن عابدين: وهويقول ان اكثر مايطلق عليه اسم الجمع عشرة واقله ثلاثة فاذادخلت عليه ال استغرق الجمع وهو العشر (الدر المختار مع الشامية: ۱۱۹/۳)

(۴۶) اوكه يې وويل والله لااكلمه الشهور، نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددا قسم په لسو مياشتو واقع كيږي ، همدا شان كه يې وويل والله لااكلمه السنون نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددا قسم په لسو كلونو واقع كيږي لماذكرنا، اودصاحبينو په نزدله الشهور څخه مراددكال دولس مياشتې دي اوله السنون څخه مرادټول عمردی ولی چې همدا معهوددی .

(۴۷) اوكه ايام اوشهوراوسنون نكره ذكركړل نودايام ذكركولوپه صورت كې دري ورځې اودشهورذكركولوپه صورت كې دري مياشتې اودسنون ذكركولوپه صورت كې دري كاله مراددي ولی چې دري واړه جمع منكردي لهذاترڅوچې په كثرت سره متصف نه وي له دوئ څخه به جمع اقل مرادوي چې دري دځكه چې اقل متيقن دی .

## بَابُ الْيَمِينِ فِي الطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ

### داباب دطلاق اوعتاق دقسم په بيان كې دی

په دي باب كې يې داسې افعال (طلاق ،عتاق وغيره) ذكركړي دي په كوموچې وقوع قسم ډيره ده په نسبت بيع ،اوشراء، تزويج ،صوم اوصلوة وغيره ته ،ځكه يې ددي تفصيل مقدم كړ،بلكه مصنف رحمه الله ديمين په ابوابو كې ترتيب په دي ډول اينبی دی چې دكوم باب دمسائلو وقوع ډيره وي هغه يې په قليل الوقوع مقدم كړی دی چنانچه دهرباب دمسائلو وقوع له ماقبل څخه اقل اوله مابعد څخه اكثره وي .

(۱) اِنْ وَلَدْتِ فَأَنْتِ كَذَا حَنِثَ بِالْمَيِّتِ (۲) بِخِلَافِ فَهُوَ حُرٌّ فَوَلَدَتْ وَلَدًا مَيِّتًا ثُمَّ آخَرَ حَيًّا عَتَقَ الْحَيُّ وَحْدَهُ (۳) اَوَّلُ عَبْدٍ أَمْلِكُهُ فَهُوَ حُرٌّ فَمَلَكَ عَبْدًا عَتَقَ وَلَوْ مَلَكَ عَبْدَيْنِ مَعًا ثُمَّ آخَرَ لَا يَعْتِقُ وَاحِدٌ مِنْهُمْ (۴) وَلَوْ زَادَ وَحْدَهُ عَتَقَ الثَّالِثُ (۵) وَلَوْ قَالَ آخِرُ عَبْدٍ أَمْلِكُهُ فَهُوَ حُرٌّ فَمَلَكَ عَبْدًا فَمَاتَ لَمْ يَعْتِقْ فَلَوِ اشْتَرٰی عَبْدًا ثُمَّ عَبْدًا فَمَاتَ عَتَقَ الْآخَرُ

**ترجمه**: که تاماشوم وزیږاوونو داسې ده نو په مړه ماشوم زیږیدلو سره حانث کیږي، په خلاف د دي وینا چې هغه ماشوم ازاد دی، بیا هغې مړ زوی وزیږاوو بیا دوهم ژوندی نو صرف ژوندی ازادیږي، اول غلام دکوم چې زه مالک شم هغه ازاددی بیا هغه دغلام مالک شو نو ازادیږي او که دد وغلامانو په یو ځای مالک شو بیا ددریم نو نه ازدیږي له دوئ څخه یو هم، او که یې لفظ دوحده زیات کړ نو دریم ازادیږي، او که یې وویل اخري غلام چې زه مالک شم هغه ازاددی بیا مالک شو دغلام او مړ شو نو نه ازادیږي نو که یې واخیستی یو غلام بیا بل غلام بیا مړ شو نو اخیري یو ازادیږي له هغه وخت څخه چې مالک شوی یې دی.

**تشریح**: (۱) که چاخپلې ښځې یا مینځې ته وویل چې که تاماشوم وزیږاوو نو ته طلاقه یې یا ته ازاده یې بیا دهغې مړ ماشوم وزیږیدو نو حالف حانث کیږي یعنی که ده ښځې ته ویلي وو نو ښځه یې طلاقیږي او که یې مینځې ته ویلي وو نو مینځه ازادیږي ولی چې اصول دادي چې مړ ماشوم دغیر په حق کې ولد دی او په خپل حق کې ولد نه شمارل کیږي همداوجه ده چې په مړه ماشوم سره ددمطلقې عدت تیریږي اوله دي څخه وروسته چې کوم وینه وي هغه نفاس شمارل کیږي لیکن هغه په خپله وارث نه دی او ده ته غسل نه ورکول کیږي او هغه ته لمونځ نه ورکول کیږي.

(۲) او که حالف خپلې مینځې ته وویل که تاماشوم وزیږاوو نو هغه ازاددی، نو اوس شرط دادی چې ماشوم به ژوندی وي نو که دي مړ ماشوم وزیږاوو بیا یو بل ژوندی ماشوم وزیږاوو نو دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد صرف ژوندی ماشوم ازادیږي مړ ماشوم ازادنه دی ولی چې حالف حریت دمولود وصف ګرځولی دی لهذا مولود ژوند ضروري دی ولی چې مړ شوی دصف حریت نه قبلوي.

(۳) که چاداسې وویل چې اول غلام چې زه یې مالک شم هغه ازاددی بیا هغه دیوه غلام مالک شو نو غلام ازادیږي ولی چې پرده داول غلام اطلاق صحیح دی ځکه چې اول نوم دی دهغه چې له هغه څخه وړاندي دهغه له جنس څخه بل نه وي خواه که له ده څخه وروسته وي او که نه وي، او که حالف په یو ځای ددوو غلامانو مالک شو بیا ددریم مالک شو نو له دي دریو څخه یو غلام هم نه ازادیږي ولی چې په اولنیو دوو کې تفرد نشته بلکه دوه دي او پر دریم داول اطلاق صحیح نه دی ولی چې هغه له اولنیو دوو څخه وروسته په ملک کې راغلی دی لهذا یو هم نه ازادیږي.

(۴) او که حالف دوحده لفظ اضافه کړ مثلاً وي ویل اول عبداملکه وحده فهو حر، (یعنی دکوم یو اځنی غلام چې زه اول مالک شم هغه ازاددی) بیا هغه یو ځای ددوو غلامانو مالک شو له دي څخه وروسته بیا دیوه دریم غلام مالک شو نو دادریم غلام ازدیږي ولی چې دده په باره کې دحالف داقول صادق دی چې داهغه یو اځنی غلام دی دکوم چې حالف اول مالک شوی دی نو دشرط حریت دموجود والی په وجه ازادیږي.

(۵) او که چاوویل چې دکوم غلام چې زه دټولو په اخیر کې مالک شم هغه ازاددی، بیا هغه دیوه غلام مالک شو له دي څخه وروسته بیا دبل مالک شو بیا دی مړ شو نو وروسته اخیستل شوی غلام له هغه وخت څخه ازاد شمارل کیږي کوم وخت چې حالف دهغه مالک جوړ شوی دی ولی چې حالف له ټولو څخه وروسته دهغه مالک شوی دی لهذا دحالف دازادولو قول دهمده په باره کې دی، نو که مالک دی دصحت په

حال کې اخیستی وونوله کل ترکه څخه ازادیږي او که یې په مرض موت کې اخیستی وونوله ثلث ترکه څخه ازادیږي.

(۶) کُلُّ عَبْدٍ بَشَّرَنِي بِكَذَا فَهُوَ حُرٌّ فَبَشَّرَهُ ثَلَاثَةٌ مُتَفَرِّقُونَ عَتَقَ الْأَوَّلُ وَإِنْ بَشَّرُوهُ مَعًا عَتَقُوا (۷) وَصَحَّ شِرَاءُ أَبِيهِ لِلْكَفَّارَةِ لَا شِرَاءُ مَنْ حَلَفَ بِعِتْقِهِ (۸) وَأُمِّ وَلَدِهِ (۹) إِنْ تَسَرَّيْتُ أَمَةً فَهِيَ حُرَّةٌ صَحَّ لَوْ فِي مِلْكِهِ وَإِلَّا لَا

**ترجمه**: کوم غلام چې ماته فلانکی زیری راوا وروي هغه ازاددی، بیاده متفرق غلامانو زیری ورواوراوونو اول ازادیږي او که ټولو په یو ځای زیری ورکړنو ټول ازادیږي، اوصحیح دی دخپل پلار اخیستل دکفاري لپاره نه هغه دکوم دازادي قسم چې یې اخیستی دی، او دده ام ولده، که زه مینځې ترخپل لاس لاندي راولم نو هغه ازاده ده نو صحیح ده که دده په ملک کې وه که نه نو نه ده.

**تشریح**: (۶) که چاداسې وویل چې کوم غلام چې ماته دفلانکی خبري زیری راکړي هغه ازاددی، بیاده ته دریو غلامانو یو په بل پسې دهغې خبري زیري ورکړنو په دوئ کې چې کوم یوه اول زیری ورکړ هغه ازدیږي ولی چې زیری ورکول له اول څخه متحقق شونه له باقي دوو څخه، او که دریو واړو په یو وخت زیری ورکړنو دري واړه ازادیږي ولی چې زیري ورا وروول له دریو واړو څخه متحقق شوا ویری ورکول له متعدد څخه متحقق کیدای شي کماقال الله تعالی ﴿وَبَشَّرُوهُ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ﴾.

(۷) یعنی دکفاري لپاره دخپل پلار (یاکوم بل ذی رحم محرم) اخیستل جائزدی مثلاً دچاپرذمه دروژي کفاره وه او دهغه پلار دچاغلام وو ده خپل پلار دکفاري په نیت واخیستی نو دده پلار ازادیږي او کفاره هم اداء کیږي ولی چې دذی رحم محرم قریب اخیستل دهغه ازادول دي او پرحالف ازادول لازم دي کوم چې متحقق شو، البته دکوم غلام دازادي چې حالف قسم اخیستی وي نه دهغه په اخیستلو سره کفاره نه اداء کیږي مثلاً دچاغلام ته یې وویل که ماته واخیستی نو ته ازادیې بیادکفاري داداء کولو په نیت هغه واخیستی نو دهغه په ازادیدلو سره کفاره نه اداء کیږي ولی چې داغلام په یوه وجه سره دازادي مستحق ګرځیدلی دی نو دهغه مملوکیت ناقص شو حال داچې دکفاري لپاره کامل مملوک والی ضروري دی.

(۸) قوله وام ولده ای لایصح ایضاشراء ام ولده للکفارة، یعنی په همدي ډول که دچاپه نکاح کې دبل چامینځه وي له کومې څخه چې دده بچیان هم وي ده خپلې دي ښځې ته وویل چې که ماته واخیستی نو ته زما دکفاري له طرف څخه ازاده یې بیاده هغه واخیستله نو داخپلې ام ولدي اخیستل دي لهذا هغه خوازادیږي مګرده کفاره نه اداء کیږي ولی چې داام ولده والی په وجه سره مستحق حریت ده لهذا داازادي من کل الوجوه دیمین له طرف څخه نه شمارل کیږي.

(۹) تسرّی له تحصین (دجماع په معنی) څخه عبارت دی یعنی مینځه دجماع لپاره متعین کول اوله کور څخه دباندي له خدمت کولو څخه منع کولو ته ویل کیږي، نو که چاداسې وویل چې که زه کومه مینځه په خپله ماتحتی کې راولم نو هغه ازاده ده، نو کومه مینځه چې دحلف پروخت دده په ملک کې وي دهغې په باره کې داقول صحیح دی یعنی که یې هغه په خپله ماتحتی کې راوستله نو هغه ازادیږي ولی چې امه عموماً هغې ته ویل کیږي کومه چې دچاپه ملک کې وي لهذا قسم دهغې په باره کې منعقدیږي، او کومه

مینځه چې دحلف پروخت دده پهٔ ملک کې نه وي هغه که دی په خپله ماتحتی کې راولې نوهغه نه ازادیږي ولی دهغې په باره کې یمین منعقدشوی نه دی.

(۱۰) كُلُّ مَمْلُوكٍ لِي حُرٌّ عَتَقَ عَبِيدُهُ الْقِنُّ وَأُمَّهَاتُ أَوْلَادِهِ وَمُدَبَّرُوهُ (۱۱) لَا مُكَاتَبُهُ (۱۲) هَذِهِ طَالِقٌ أَوْ هَذِهِ وَهَذِهِ طَلُقَتْ الْأَخِيرَةُ وَخُيِّرَ فِي الْأُولَيَيْنِ (۱۳) وَكَذَا الْعِتْقُ وَالْإِقْرَارُ

**ترجمه**: زما ټول غلامان ازاددي نو ازادیږي دده ټول غلامان او امهات الاود او دده مدبر، نه دده مکاتب، داطلاق ده یادا او دا نو اخیری طلاقیږي او په اولنیو دووکې خاوندلره اختیاردی، همداشان عتق او اقراردی.

**تشریح**: (۱۰) که چاداسې وویل چې زما چې څومره مملوک دي هغه ټول ازاددي نو په دي ویناسره دده ټول غلامان او دده ام ولدي مینځې او دده مدبرغلامان ازادیږي ولی چې له مطلق څخه کامل مرادوي او په دي دریوقسمونوکې ملک کامل دی ځکه چې په دوئ کې دمولی ملک یدا او رقبة دواړه قسمه شته همدا وجه ده چې له ام ولدا و مدبري سره دمولی وطی کول جائزدی لهذا لفظ مملوک دي ټولوته شامل دی.

(۱۱) البته په مذکوره صورت کې دحالف مکاتب غلام نه ازادیږي ولی چې په مکاتب کې ملکیت کامل نه دی په دي وجه چې په مکاتب کې رقبةً ملک قائم دی یدا نشته همدا وجه ده چې له مکاتبې سره وطی کول جائزنه ده، البته که مولی ددوئ دازادیدلو نیت هم وکړي نوبیا ازادیږي.

(۱۲) که چاخپلو دریو ښځوته داسې وویل هذه طلاق او هذه وهذه (داطلاق ده یادا او دا) نو په دي دریوکې چې یې دکومې طرف ته په اخیرکې اشاره کړي ده هغه خوطلاقیږي په باقی دووکې خاوندلره اختیاردی په دوئ دواړوکې چې یې کومه یوه خوښه شي هغه دي دطلاق لپاره خاصه کړي ولی چې حرف او، له اولینو دوو ښځو څخه په یوه کې داثبات حکم لپاره دی لهذا په اولنیو دووکې به یوه دطلاق لپاره خاصه کړي بیامتکلم دلفظ واؤ په ذریعه دریمه ښځه پرمطلقې عطف کړي ده او عطف دحکمی شراکت لپاره وي نو داداسې ده لکه چې ده داسې ویلې وي چې په تاسې دواړوکې یوه مطلقه او دادریمه مطلقه ده لهذا دریمه په هرحال طلاقیږي او په اولنیو دووکې ده ته اختیاردی.

(۱۳) مذکوره بالاتفصیل په ازادولو او اقرارکولوکې هم دی مثلا چاخپلو دریوغلامانوته داسې وویل داازاددی یادا او دا، نودریم ازادیږي او په اولنیو دووکې ده ته اختیاردی چې په دوئ دواړوکې یې دکوم یوه ازادي خوښه شي هغه دي بیان کړي. همداشان که چاداسې اقراروکړچې زماپرذمه دفلان زرروپۍ دي یادفلان او دفلان، نودده پرذمه ددریم لپاره پنځه سوه لازمې دي او باقی پنځه سوه دي په اولنیو دووکې دیوه لپاره بیان کړي او که بلابیانه مړشونو پنځه سوه په اولنیو دووکې مشترکې دي.

## بَابُ الْيَمِينِ فِي الْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ وَالتَّزَوُّجِ وَالصَّوْمِ وَالصَّلَاةِ وَغَيْرِهَا

داباب داخیستلو، خرڅولو، نکاح، حج، لمانځه او روژې وغیره دقسم اخیستلو په بیان کې دی دجه دمناسبت دمخکنی باب په پیل کې تیره شوي ده

(١) مايحنث بالمباشرة لا بالأمر البيع والشراء والإجارة والاستئجار والصلح عن مال والقسمة والخصومة وضرب الولد (٢) ومايحنث بهما النكاح والطلاق والخلع والعتق والكتابة والصلح عن دم عمد والهبة والصدقة والقرض والاستقراض وضرب العبد والذبح والبناء والخياطة والإيداع والاستيداع والإعارة والاستعارة وقضاء الدين وقبضه والكسوة والحمل

**ترجمه**: دكومو امورو په خپله كولو سره چې حانث كيږي نه بل ته په امر كولو سره هغه دادي اخيستل، خرڅول، او په مزدوري وركول او په مزدوري اخيستل او صلح بعوض مال او قسمة او خصومات او ولد وهل، او په كومو كې چې په دواړو سره حانث كيږي هغه دادي نكاح او طلاق او خلع او ازادول او مكاتب كول او له قتل عمد څخه صلح او هبه كول او قرض وركول او قرض اخيستل او غلام وهل او ذبح كول او تعمير كول او ګنډل او امانت وركول او امانت ايښودل او په عاريت وركول او په عاريت اخيستل او قرض اداء كول او قرض وصول كول او جامې وركول او كوم شئ اوچتول.

**تشريح**: (١) يعني هغه امور چې دهغو په خپله كولو سره انسان حانث كيږي ليكن كه يې په وكيل سره وكړي نو نه حانث كيږي دادي بيع، شراء، په اجاره (مزدوري) وركول، او په اجاره (مزدوري) اخيستل، صلح بعوض مال، تقسيم كول، په مقدماتو (دعوو) كې ځواب وركول، او اولادو هل، مثلاً قسم يې واخيست چې والله زه به داشئ خرڅ نه كړم نو كه ده خپله خرڅ كړنو حانث كيږي او كه دده وكيل خرڅ كړنو نه حانث كيږي، همداشان كه يې ديو شئ په باره كې وويل والله زه به داشئ وانه خلم يا والله زه به داشئ په اجاره ورنه كړم يا والله زه به داشئ په اجاره وانه خلم يا والله زه به دمال په عوض كې صلح ونه كړم يا والله زه به له شريک سره تقسيم ونه كړم يا والله زه به له فلان سره مخاصمت ونه كړم نو ددي ټولو شيانو په باره كې حكم دادى چې په خپله كولو سره يې حانث كيږي مګر په وكيل سره په كولو نه حانث كيږي ولى چې په وكيل سره دكولو په صورت كې دشرط حنث (دهغه كار په خپله كول) دنه موجود يدلو په وجه نه حانث كيږي.

ف: په دي باره كې اصل دادى چې دكومو عقودو حقوق چې له عقد كونكي مباشر سره متعلق وي لكه مذكوره بالاامور دهغو په خپله كولو سره حانث كيږي او په وكيل سره په كولو نه حانث كيږي او دكومو عقودو حقوق چې عقد كونكي مباشر ته راجع نه وي بلكه دچا لپاره چې عقد كيږي هغه ته راجع وي لكه نكاح، طلاق، عتاق وغيره دهغو په خپله كولو سره هم حانث كيږي او په وكيل په كولو سره هم حانث كيږي.

(٢) او هغه امور چې دهغوئ په خپله كولو سره هم حانث كيږي او په وكيل سره په كولو هم حانث كيږي دادي، نكاح كول، طلاق وركول، خلع كول، ازدول، مكاتب جوړول، له قتل عمد څخه صلح كول، هبه كول، صدقه كول، قرض وركول، قرض اخيستل، غلام وهل، ذبح كول، مكان جوړول، جامه ګنډل، خپل شئ له بل سره په امانت ايښودل، دبل شئ له خپل ځان سره امانت ايښودل، خپل شئ چاته عارية وركول، دبل شئ اعارة اخيستل، قرض اداء كول، خپل قرض وصول كول، كوم شئ په سورلى باندي بارول، مثلاً وي ويل والله زه به نكاح ونه كړم بيا ده خپله نكاح وكړه يا دده وكيل دده نكاح وكړه نو په دواړو صورتونو كې حانث كيږي ولى چې ددي امورو حقوق دآمر طرف ته راجع كيږي وكيل سفير محض دى لهذا كه داكار په خپله وكړي او كه يې په وكيل وكړي دواړه برابر دي.

(۳) وَدُخُولُ اللَّامِ عَلَى الْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ وَالْإِجَارَةِ وَالصِّيَاغَةِ وَالْخِيَاطَةِ وَالْبِنَاءِ كَأَنْ بِعْتُ لَكَ ثَوْبًا لِاخْتِصَاصِ الْفِعْلِ بِالْمَحْلُوفِ عَلَيْهِ بِأَنْ كَانَ بِأَمْرِهِ كَانَ مِلْكَهُ أَوْ لَا (۴) وَعَلَى الدُّخُولِ وَالضَّرْبِ وَالْأَكْلِ وَالشُّرْبِ وَالْعَيْنِ كَأَنْ بِعْتُ ثَوْبًا لَكَ لِاخْتِصَاصِهَا بِهِ بِأَنْ كَانَ مِلْكَهُ أَمَرَهُ أَوْ لَا (۵) فَإِنْ نَوَى غَيْرَهُ صُدِّقَ فِيمَا عَلَيْهِ

**ترجمه**: اودلام داخليدل په بيع اوشراء او اجاره اورضاعت اوخياطت اوبناء باندي لكه چې داسې ووايې چې كه ما خرڅه كړه ستالپاره ستاجامه داختصاص فعل بالمحلوف عليه لپاره وي په دي معنى چې هغه دده په امرسره شوى وي خواه كه دده ملک وي اوكه نه وي ،اوپه دخول اوضرب اواكل اوشرب اوعين شئ باندي لكه چې داسې ووايې چې كه زه خرڅه كړم ستادا جامه داختصاص شئ بالمحلوف عليه لپاره وي په دي معنى چې دابه دده ملک وي خواه كه يې امركړى وي يانه وي،اوكه له دي څخه دعلاوه نيت يې كړى وي نوتصديق به كيږي په هغه كې چې په هغه كې دده تاوان وي .

**تشريح**: (۳)په عربي ژبه كې دلفظ بيع ،شراء ،اجاره ،صناعة ،خياطة اوبناء په صله كې دلام راتلل ددي لپاره وي چې دافعل په محلوف عليه پوري خاص دى يعنى چې هغه دده په اجازت سره شوى وي خواه محلوف عليه دهغه مالک وي يانه وي مثلاحالف داسې وويل ان بعت لک ثوبا فعبدى حر(كه ما ستالپاره جامه خرڅه كړم نوزماغلام ازاددى )نوددي مطلب دادى چې زه يې ستاپه اجازت سره خرڅه كړم نوزماغلام ازاددى نوكه ده دمخاطب په اجازه خرڅه كړه نوغلام ازاديږي كه نو نه ازاديږي بياعامه ده چې جامه دده ملک وي يانه وي .همداشان په شراء وغيره كې دى مثلاوي ويل ان اشتريت لک ثوبا فعبدى حر اى ان اشتريت بامرک ثوبا فعبدى حر(كه ما ستالپاره جامه واخلم نوزماغلام ازاددى )ياووايې اجرت لک دارا فعبدى حر(كه ما ستالپاره مكان پركرايه وركړم نوزماغلام ازاددى )ياووايې ان صنعت لک خاتما فعبدى حر(كه ماستا لپاره گوتمې جوړه كړه نوزماغلام ازاددى )ياېې وويل ان خطت لک ثوبا فعبدى حر(كه ماستالپاره جامه وګنډله نوزماغلام ازاددى )ياېې وويل ان بنيت لک دارا فعبدى حر(كه ماستالپاره مكان جوړكړنوزماغلام ازاددى).

(۴)اوكه دلفظ دخول ،ضرب اكل ،شرب يادكوم شئ يعنى ذات مشخص مثلاثوب وغيره په صله كې لام راغى نودالام ددي خبري دبيانولولپاره وي چې داشئ (يعنى محلوف به )ددي كس (يعنى محلوف عليه )ملک وي بياخواه كه هغه اجازه وركړي ياېې ورنه كړي مثلاداسې يې وويل ان دخلت لک دارا فعبدى حر(كه زه ستامكان ته داخل شوم نوزماغلام ازاددى )نوپه دي وخت كې شرط دادى چې داربه دمحلوف عليه كس ملک وي نواوس كه حالف دده كورته داخل شي نودده غلام ازاديږي خواه كه مالک ددخول اجازه وركړي اوكه اجازه ورنه كړي اوكه دارددده په ملک كې نه وي نودحالف غلام نه ازاديږي ،همداشان ضرب وغيره دي مثلاوى ويل ان ضربت لک عبدا فعبدى حر(كه ماستاغلام وواهه نوزماغلام ازاددى )ياېې وويل ان اكلت طعاما لک فعبدى حر(كه ماستاخوړک وخوړى نوزماغلام ازاددى)ياېې وويل ان بعت ثوبا لک فعبدى حر(كه ماستاجامه خرڅه كړه نوزماغلام ازاددى ).

(۵)اوكه متكلم په مذكوره بالادواړوصورتونوكې له قاعدي څخه مخالف نيت وكړنوپه كوم صورت كې دده نقصان وي په هغه كې خوبه ديانة اوقضاء په دواړواعتبارونوسره دده تصديق كيږي اوپه كوم صورت كې چې دده فائده وي په هغه صورت كې به صرف ديانة دده تصديق كيږي نه قضاء،لكه له فعل

څخه وروسته چې لام ذکرکړي او نيت له عين څخه وروسته دلام دذکرکولو وکړي مثلا ووايي ان اشتريت لک لوبالعبدی حر(چې په دې وخت کې قاعده داده چې دافعل به په محلوف عليه پورې خاص وي يعنې دده په اجازه به وي خواه که دده ملک وي او که نه وي )او ده نيت دان اشتريت لوبالک لعبدی حر(چې په دې وخت کې قاعده داده چې دالام دابيانوي چې داشئ به ددې کس ملک وي خواه که هغه اجازه ورکړي او که يا )وکړي او س ده دمحلوف عليه له اجازت څخه بغيردده جامه خرڅه کړه نو څرنګه چې په دې صورت کې ددې غلام ازاديږي او په دې کې دده نقصان هم دی لهذا دده تصديق به کيږي .

(۶)اِنْ بِعْتُه اَو ابْتَعْتُه فَهُوَ حُرٌّ لَعَقَدَ بِالْخِيَارِ حَنِثَ (۷) وَكَذَا بِالْفَاسِدِ وَالْمَوْقُوفِ لَا بِالْبَاطِلِ (۸) اِنْ لَم اَبِعْ فَكَذَا فَاَعْتَقَ اَوْ دَبَّرَ حَنِثَ (۹) قَالَتْ تَزَوَّجْتَ عَلَيَّ فَقَالَ كُلُّ امْرَأَةٍ لِي طَالِقٌ طَلُقَتِ الْمُحَلِّفَةُ

**ترجمه**:که ماداخرڅ کړيا واخيستی نو هغه ازاددی بيايې له خيارسره عقد وکړنو حانث کيږي ،همداشان په بيع فاسدا وموقوف سره دی نه په باطل سره ،که زه خرڅ نه کړم نوداسې ده بيايې ازادکړيايې مدبر کړنو حانث کيږي ،ښځې وويل تاپرمانکاح کړې ده خاوند وويل زماهره ښځه طلاقه ده نو دقسم ورکونکې طلاق هم واقع کيږي .

**تشريح** :(۶)که چاد خپل غلام په باره کې وويل ان بعته فهو حر(که مادی خرڅ کړنو دی ازاددی )بيايې دځان لپاره ددريو ورځو داختيارپه شرط سره غلام خرڅ کړنو غلام ازاديږي ولی چې شرط ازادي يعنې خرڅول موجود شو اودوجود شرط په وخت کې دده ملک هم قائم دی ولی چې دامام صاحب په نزدد بائع دخيارشرط په صورت کې مبيع دبائع له ملک څخه نه وځي ،همداشان که يې دبل دغلام په باره کې وويل ان ابتعته فهو حر(که مادی واخيستی نودی ازاددی )بياده خپل ځان لره ددريو ورځو په اختيارسره غلام واخيستی نو هم غلام ازاديږي ولی چې دلته هم شرط ازادي يعنې اخيستل متحقق شو لهذا غلام ازاديږي.

(۷)قوله وكذابالفاسد والموقوف ای وكذا يحنث بالفاسد من البيع والشراء ويحنث بالموقوف منهما ولا يحنث بالباطل ،يعنې مذکوره بالاحکم دبيع فاسدي هم دی مثلاچاوويل ان بعتک فانت حر،بيايې په بيع فاسدسره خرڅ کړنوازاديږي ولی چې شرط موجودشو په دې وجه چې بيع فاسده هم شرعاًبيع ده په کومه سره چې بعض احکام ثابتيږي ،اوهمداحکم دبيع موقوف هم دی مثلاحالف وويل که زه خپل داغلام په فلان غائب خرڅ کړم نودی ازاددی ،بياده پرهغه غائب کس غلام خرڅ کړاوکوم اجنبی دهغه له طرفه قبول کړنو غلام ازاديږي ولی چې شرط موجودشو په دې وجه چې دابيع که څه هم دغائب په قبلولوپورې موقوفه ده ليکن څرنګه چې بيع موقوفه په هرحال بيع ده لهذا غلام ازاديږي البته دبيع باطلې حکم دانه دی ولی چې بيع باطله نه حقيقةً بيع ده او نه حکمابيع ده ځکه چې په دې سره دبيع هيڅ حکم نه ثابتيږي .

(۸)که چاداسې وويل چې که ماداغلام خرڅ نه کړنوزماښځه طلاقه ده بياده خپل دغه غلام ازادکړيايې مدبرکړنوحالف حانث کيږي يعنې دده پرښځه طلاق واقع کيږي ولی چې شرط طلاق (يعنې دغلام نه خرڅول )موجودشو ولی چې دغلام له ازادي ياتدبيرڅخه وروسته غلام دبيع محل پاتې نه شو .

(۹)که کومې ښځې خپل خاوندته وويل ،تاپرمافلانۍ ښځه په نکاح کړې ده خاوندپه ځواب کې وويل کومه چې هم زماښځه وي هغه طلاقه ده ،نودخاوندپه دې وينا سره دده پردې ښځه هم طلاق واقع کيږي

كومې چې ده ته ويلې ووچې تاپرمافلانۍ ښځه په نكاح كړي ده اوكه كومه بله ښځه يې هم وي نوهغه هم طلاقيږي ولې چې دخاوندقول كومه چې هم زماښځه وي ،عام دی دده تولوښځوته شامل دی .

(١٠) عَلَيَّ الْمَشْيُ إِلَى بَيْتِ اللهِ تَعَالَى أَوْ إِلَى الْكَعْبَةِ حَجٌّ أَوْ اعْتَمَرَ مَاشِيًا (١١) فَإِنْ رَكِبَ أَرَاقَ دَمًا (١٢) بِخِلَافِ الْخُرُوجِ أَوْ الذَّهَابِ إِلَى بَيْتِ اللهِ تَعَالَى أَوْ الْمَشْيِ إِلَى الْحَرَمِ أَوْ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ

**ترجمه**:(كه چاوويل )پرماپه پښوتګ دی دبيت الله ياكعبة الله طرف ته نوپياده دي حج وكړي ياعمره ، نوكه سوزشونودم دي ذبح كړي ،په خلاف دبيت الله طرف ته دوتلويا دتللويادحرم ياصفااومروه طرف ته دپياده تللو .

**تشريح** :(١٠)كه چاداسې وويل چې پرمابيت الله ته ياكعبة الله ته پياده تلل دي ،نوهغه دي پياده ولاړشي حج دي وكړي يادي عمره وكړي ولې چې په دي الفاظوسره التزام احرام متعارف دی كه څه هم دقياس تقاضاداده چې پرده دي هيڅ شئ لازم نه شي ولې چې ده دتللو التزام كړي دی اوتلل مقصودي عبادت نه دی مګرداستحسان په وجه قياس متروک دی .

(١١)اوس كه ده په سورلی باندي سورحج وكړنوپسه دي ذبح كړي ولې چې دحضرت عقبه عامر ﷺ خورپياده بيت الله ته دتللونذرمنلې ووبياله پياده تللو څخه عاجزه شوه نونبی كريم ﷺ ددي په باره كې وفرمايل چې په سورلی دي ولاړه شي بيادي يوپسه ذبح كړي ،همداراز څرنګه چې ده افضل واجب ناقص اداء كړولې چې پياده حج كول افضل دی لهذادنقصان جبيره په دم سره كول لازم دي .

(١٢)قوله بخلاف الخروج اوالذهاب الى بيت الله ای لوقال علی الخروج اوالذهاب الى بيت الله فلاشئ عليه ،يعنی كه چاداسې وويل چې تربيت الله پوري سفركول ياتلل زماپرذمه دي نودده پرذمه هيڅ واجب نه دي ولې چې په عرف كې په دي الفاظو ويلوسره حج ته تلل نه مراديږي اودقسم دارومدارپه عرف دی ،همداشان كه ده وويل چې ترحرم پوري ياصفااومروه پوري په پښوتلل زماپرذمه دي نوپه دي ويلوسره هم پرده هيڅ نه لازميږي ولې چې په دي الفاظوسره التزام احرام متعارف نه دي .

(١٣) عَبْدُهُ حُرٌّ إِنْ لَمْ يَحُجَّ الْعَامَ فَشَهِدَا بِنَحْرِهِ بِالْكُوفَةِ لَمْ يَعْتِقْ الْعَبْدُ (١٤) وَحَنِثَ فِي لَا يَصُومُ بِصَوْمِ سَاعَةٍ بِنِيَّةٍ وَفِي صَوْمًا أَوْ يَوْمًا بِيَوْمٍ (١٥) وَفِي لَا يُصَلِّي بِرَكْعَةٍ وَفِي صَلَاةٍ بِشَفْعٍ

**ترجمه** :(كه چاوويل )زماغلام ازاددي كه حج ونه كړم په دي كال نودووګواهانوګواهی وركړه دده په كوفه كې پرقرباني باندي نونه ازاديږي ،اوحانث كيږي په دي ويناسره چې روژه به نه نيسم په روژه نيولوسره يوګړی سره له نيته اوديوي روژي يايوي ورځې دروژي دقسم په اخيستلوكې په پوره ورځ روژه نيولوسره ،اوپه دي ويناكې چې لمونزبه نه كوم په يوه ركعت اداء كولوسره اوپه لايصلی صلوة ويلوكې په دوه ركعته لمانځه سره .

**تشريح** :(١٣)كه چاداسې وويل كه ماپه دي كال كې حج ونه كړنوزماغلام ازاددی ،بياده دحج كولودعوه وكړه مګردووكسانوګواهي وركړه چې ده خوپه دي كال په كوفه كې قرباني وكړه نودشيخينو په نزدبه دګواهانوددي ګواهی اعتبارنه كيږي اوغلام نه ازاديږي ولې چې داپه حقيقت كې پرنفی(نفی حج )باندي ګواهي ده اوپرنفی ګواهي معتبره نه ده ،دامام محمد رحمه الله په نزددګواهانوګواهي معتبره ده ولې چې

ګواهانوپرامرمعلوم (يعنى په كوفه كې په قربانۍ كولو)ګواهي وركړي ده كومې لره چې نفى حج لازمه ده نوشرط موجودشولهذا غلام ازاديږي.

ف:دامام محمد رحمه الله قول راجع دى لمافى الدرالمختار:(لايعتق عبدقيل له ان لم احج العام فانت حر).....(فشهدابنحره ..بكوفةلم تقبل لقيامهاعلى نفى الحج ،الى ان قال ،وقال محمديعتق ورجحه الكمال (الدرالمختار:۱۳۷/۳)،كذاقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد:قال الكمال ابن الهمام فى فتح القدير:ان قول محمدهوالاوجه(هامش الهداية:۴۸۱/۲)

(۱۴)كه چاداسې ووېل چې زه به روژه ونه نيسم بيادده دروژې په نيت سره يوګړى روژه ونيوله نوحانث كيږي ولى چې شرط موجودشوپه دې وجه چې روژه له مفطراتوڅخه بقصدتقرب منع كيدلوته ويل كيږي اوداكارله ده څخه موجودشو لهذا حانث كيږي .اوكه ده داسې ويلي ووچې لايصوم صوما(زه به پوره روژه ونه نيسم )ياېې ووېل لايصوم يوما(زه به يوه ورځ روژه ونه نيسم )نوپه پوره ورځ روژه نيولوسره حانث كيږي ولى چې له صوما اويوما څخه كامل صوم شرعى مراددى او كامل صوم شرعى ديوې كاملې ورځې روژه ده لهذاله يوې ورځې څخه دكمې روژې دنيولوپه صورت كې نه حانث كيږي .

(۱۵)قوله وفى لايصلى بركعةاى لوحلف لايصلى فصلى ركعةحنث ،يعنى كه چاداسې ووېل چې زه لمونځ نه كوم ،نوپه يوه ركعت لمونځ اداء كولوسره حانث كيږي ولى چې لمونځ له اركان مختلفه څخه عبارت دى نوترڅوچې ټول اركان اداء نه كړي هغه ته لمونځ نه ويل كيږي اوټول اركان په يوه ركعت كې اداء كيږي په دوهم ركعت كې خوتكرارار كان دى لهذا ديوه ركعت په اداء كولوسره حانث كيږي ،قوله وفى صلوة بشفع اى لوحلف لايصلى صلوة حنث بركعتين ،يعنى كه يې داسې ووېل چې لايصلى صلوة (زه به پوره لمونځ اداء نه كړم ) نوپه دوه ركعته لمونځ اداء كولوسره حانث كيږي ولى چې له صلوة مطلق څخه كامل مراددى اوكامل لمونځ هغه دي كوم چې شرعاًمعتبروي اوشرعاًمعتبرلږترلږه دوه ركعته لمونځ دى ولى چې له يوه ركعت لمونځ اداء كولوڅخه منع راغلې ده .

(۱۶)إن لبست من غزلك فهو هدي فملك قطنا فغزلته ونسج فلبس فهو هدي(۱۷)لبس خاتم ذهب أو عقد لؤلؤ لبس حلي(۱۸)لا خاتم فضة(۱۹)لا يجلس على الأرض فجلس على بساط أو حصير أو لا ينام على هذا الفراش فجعل فوقه فراشا آخر فنام عليه أو لا يجلس على سرير فجعل فوقه سريرا آخر لا يحنث(۲۰)ولو جعل على الفراش قراما أو على السرير بساطا أو حصيرا حنث

**ترجمه** :كه زه په تن كړم ستانيځې كړاى شوي نوهغه هدى ده بيادى دوړيومالك شوبيابنځې هغه نيځې كړي بيايې وواودلي بيياده په تن كړه نوهغه به هدى وي ،دسروزوګوتمې په ګوته كول ياد ملغلرو اميل په غاړه كول زيور(ګيڼه )په تن كول شماريږي ،نه دسپينوزورګوتمې ،نه به كښينې پر ځمكه باندې بياپرفرش ياپوزى باندې كښينستى يابه ويده كيږي پردې فرش بياپرهغه بل فرش وغوړول شواوپرهغه ويده شويانه به كښينې پردې تخت بياپرهغه بل تخت كښېښودل شواوپه كښينستى نونه حانث كيږي ، اوكه يې وغوړاووپرفرش پلنګ پوش ياپرتخت فرش ياپوزى نوحانث كيږي .

**تشريح** :(۱۶)كه چاخپلې ښځې ته ووېل چې كه ماستاپه لاس اوبدل شوي سوت جامه په تن كړه نوهغه هدى ده يعنى دمكې مكرمې پرفقراؤصدقه ده بياخاوندوړه واخيستې ښځې هغه نيځې كړي اوله هغوڅخه يې جامه جوړه كړه اوس خاوندهغه په تن كړه نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددا جامه هدى ده ولى چې عادت

پردي جاري دی چې ښځه دخپل خاوندله وړيو څخه نيځي. جوړوي اوپه قسم کې هغه مرادوي کوم چې معتاداومتعارف وي.

(۱۷)که چاقسم واخيست چې والله زه به زيور(ګېڼه )په تن نه کړم بياده دسروزروګوتمۍ پرګوته کړه ياېې دملغلرواميل په غاړه کړنودازيورپه تن کول دي لهذاداکس حانث کيږي ولې چې دسرو زروګوتمۍ په ګوته

کول اودملغلرواميل په غاړه کول زيوردی له همدي وجه نارينه وته دسرو زرو ګوتمۍ حلاله نه ده.

(۱۸)قوله لاخاتم فضة ای لايکون لبسه لبس حلي فلايحنث ،يعنی که مذکوره بالاحالف دسپينوزروګوتمۍ په ګوته کړه نونه حانث کيږي ولې چې دسپينوزروګوتمۍ ته په عرف کې زيورنه ويل کيږي اوشرعاًهم زيورنه دي ولې چې زيورهغه دي کوم چې صرف دتزين په ډول استعماليږي حال داچې دسپينوزرو ګوتمۍ دتزين اوغيرتزين دواړولپاره استعماليږي همداوجه ده چې نارينه ولره ددي په ګوته کول اودمهرپه غرض سره استعمالول مباح دي.

(۱۹)که چاقسم واخيست چې والله زه به پرځمکه نه کښينم ،بياپردرۍ ياپوزي باندي کښينستی نونه حانث کيږي ولې چې پرفرش ياپوزي باندي کښينستونکې ته پرځمکه کښينستونکی نه ويل کيږي ،اوکه يې وويل والله زه به پردي بستره ويده نه شم بياپرهغه بستره بله بستره وغوړول شوه بياپرهغې ويده شونونه حانث کيږي ولې چې مثل شئ دشئ تابع نه وي لهذادويده کيدلونسبت اوس دثانې طرف ته دی داول طرف ته نه دی ، همداشان که چاقسم واخيست والله زه پرتخت نه کښينم بياپر تخت بل تخت کښيښودل شوبيادي پرهغه کښينستی نونه حانث کيږي ولې چې شئ دخپل مثل تابع نه وي نودناستې نسبت داول طرف ته نه دی بلکه ددوهم طرف ته دی.

(۲۰)که يې وويل والله زه به پردي بستره ويده نشم بياپرهغه بسترپه داسې حال کې ويده شوچې پرهغه څادرغوړيدلی وونوحانث کيږي ولې چې څادردبسترتابع دی لهذاده ته نائم علی الفراش ويل کيږي ،اوکه چاقسم واخيست چې والله زه به پردي تخت نه کښينم بياپرداسې تخت کښينستی پرکوم چې فرش ياپوزی وونوحانث کيږي ولې چې ده ته په عرف کې جالس علی السريرويل کيږي.

## بَابُ الْيَمِيْنِ فِي الضَّرْبِ وَالْقَتْلِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ

دباب په وهلواوقتل اوغيره باندي دقسم اخيستلوپه بيان کې دی

وجه دمناسبت يې له دي څخه وړاندي تيره شوي ده

(۱)إِنْ ضَرَبْتُكَ وَكَسَوْتُكَ وَكَلَّمْتُكَ وَدَخَلْتُ عَلَيْكَ فَعَبْدِي حُرٌّ تَقَيَّدَ بِالْحَيَاةِ)(۲)بِخِلَافِ الْغُسْلِ وَالْحَمْلِ وَالْمَسِّ (۳)لَايَضْرِبُ امْرَأَتَهُ فَمَدَّ شَعْرَهَا اَوْ خَنَقَهَا اَوْ عَضَّهَا حَنِثَ (۴)إِنْ لَمْ أَقْتُلْ فُلَانًا فَكَذَا وَهُوَ مَيِّتٌ إِنْ عَلِمَ بِهِ حَنِثَ)(۵)وَإِلَّا لَا

**ترجمه** :که ماته ووهلې ،ياتاته جامې درپه تن کړي ،يا له تاسره خبري وکړي ،ياتاته راغلم نودا افعال په ژوندانه پوري مقيد کيږي ،په خلاف دغسل اوحمل اومس کولو ،نه به ووهې خپله ښځه بيايې دهغې وېښتان

کش کړل یا یې ترغاړي ونیوله یا یې خوله په ولګوله نو حانث کیږي ،که ما فلان قتل نه کړنو داسې ده حال
دا چې هغه مړشوی دی که ده ته دا معلومه وي نو حانث کیږي که نه نو نه حانث کیږي .

**تشریح** :(۱)که چا په قسم اخیستلو سره چاته وویل که ماته ووهلې نو زما غلام ازاد دی ،نو دا قسم دمخاطب
ترژوندپوري دی نو که حالف هغه په ژوندکې ووهه نو حانث کیږي ولې چې شرط موجودشو اوکه یې له
مرګه وروسته ووهه نونه حانث کیږي ولې وهل ددردورکونکې فعل نوم د ی اودردورکول په مړه کې نه
متحقق کیږي ،همداشان که حالف وویل که ماتاته جامه درپه تن کړه نوزماغلام ازاددی ،نوکه یې په
ژوندکې جامه ورکړه نوحانث کیږي ولې چې شرط موجودشواوکه یې له مرګه وروسته ده ته کفن ورکړنونه
حانث کیږي ولې چې له مطلق جامې ورکولوڅخه مرادتملیک دی اومړی دتملیک قابل نه دی ،همداشان
که حالف وویل که ماله تاسره خبري وکړي نوزماغلام ازاددی ،نوکه حالف دمخاطب په ژوندکې له ده سره
خبري وکړي نوحانث کیږي ولې چې شرط موجودشواوکه یې له مرګه وروسته خبري ورسره وکړي نونه
حانث کیږي ولې چې له کلام څخه مرادافهام دی اومرګ له افهام سره منافي دی ، همداشان که حالف وویل
که زه تاته راغلم نوزماغلام ازاددی نوکه په ژوندکې ورغی نوحانث کیږي ولې چې شرط موجودشواوکه له
مرګه وروسته یې دقبرزیارت وکړنو دشرط دنه وجودپه وجه نه حانث کیږي ولې چې له مرګه وروسته
دقبرزیارت کیږي دده زیارت نه کیږي .

(۲)اوکه حالف وویل که ماتاته غسل درکړنوزماغلام ازاددی بیایې دده له مرګه وروسته ده ته
غسل ورکړنوحانث کیږي ولې چې دغسل معنی ده داوبوپه تویولوسره پاکول اودامعنی په مړه کې هم
موجوده ده ،همداشان که یې وویل که ماته اوچت کړي نوزماغلام ازاددی ،نوکه له مرګه وروسته یې دی
اوچت کړنوهم حانث کیږي ولې چې اوچتول له مرګه وروسته هم متحقق کیږي ،همداشان که یې وویل که
ماتاته لاس دروړنوزماغلام ازاددی بیایې له مرګه وروسته ده ته لاس وروړی نوهم حانث کیږي ولې چې
لاس وروړل کله دتعظیم اوشفقت لپاره وي نوداله مرګه وروسته هم متحقق کیږي په دې وجه له مرګه وروسته
هم حانث کیږي .

**ف**:په دې باره کې قاعده داده کوم امورچې له ژوندسره خاص وي هغه که حالف له ژوندی سره وکړي
نوحانث کیږي مګرله مړی سره په کولویې نه حانث کیږي لکه ضرب وغیره اوکوم امورچې په ژوندپوري
خاص نه وي هغه که حالف له ژوندي سره وکړي نوهم حانث کیږي اوکه یې له مړی سره وکړي نوهم حانث
کیږي مثلاً غسل ،اوچتول وغیره .

(۳)که چا داسې قسم واخیست چې والله زه به خپله ښځه ونه وهم بیایې دهغې ویښتان کش کړیایې
ترغاړه ونیوله یایې خوله پرولګوله نوحانث کیږي ولې چې وهل ددردورکونکې فعل نوم دی اودردورکول
په دې دریوواړه صورتونوکې موجوددی لهذاحالف حانث کیږي .

(۴)که چا داسې قسم واخیست چې که مافلانکی کس قتل نه کړنوزماښځه طلاقه ده ،حال داچې
هغه کس مړشوی دی اوحالف هم دهغه په مرګ خبردی نوطلاق واقع کیږي ولې چې یمین منعقد شوپه دې

وجه چې الله تعالى په اعاده قادردى مگرځرنگه چې عادة دهغه يمين له پوره كولوڅخه حالف عاجزدى لهذااسمان ته دختلو دقسم اخيستلوپه ځيرفى الحال حانث كيږي .

(۵)قوله والالاای وان لم يعلم بموته لايحنث ،يعنى كه حالف دمذكوره كس په مرگ خبرنه وونو نه حانث كيږي ولى چې ده يمين دده پرداسې ژوندمنعقدكړى دى كوم چې په ده كې موجوددى حال داچې هغه موجودنه دى نوځرنگه چې ددي قسم پوره كول متصورنه دى لهذاقسم منعقدنه شوپه دي وجه حالف نه حانث كيږي .دامام ابويوسف رحمه الله په نزدحانث كيږي ولى چې دده په نزددتكميل يمين تصوردانعقاديمين لپاره شرط نه دى .

(٦)وماذون الشهر قريب(٧)وهوومافوقه بعيد(٨)ليقضين دينه اليوم فقضاه زيوفااونبهرجة اومستحقة برّ(٩)ولو رصاصا اوستوقة لا (١٠)والبيع به قضاء(١١)لاالهبة

**ترجمه** :له يوې مياشتې څخه کم قريب دى ،اويوه مياشت له دي څخه زيات بعيد دى ،ضروربه دده قرضه نن اداء كوي بياده اداء كړي داسې چې كومې چې كوټه وي يانبهرجه وي يادبل چاوي نوله قسم څخه برى كيږي ،اوكه رانگ وي ياستوقه وي نونه برى كيږي ،اوددي په عوض خرڅول اداء ده ،نه هبه كول .

**تشريح** :(۶)له يوي مياشتې څخه كم وخت قريب دى نوكه چاقسم واخيست چې والله زه به دفلان قرضه عنقريب اداء كړم نوله دي څخه مرادله يوي مياشتې څخه لږوخت دى ولى چې له يوې مياشتې څخه لږوخت ته په عرف كې قريب ويل كيږي نوكه ده له يوي مياشتې څخه په لږوخت كې اداءكړنوبري كيږي كه نه نو حانث كيږي .

(٧)اوپوره يوه مياشت اوله دي څخه زيات وخت بعيددى نوكه يې وويل چې والله زه به په مدت بعيدكې دفلان قرضه اداء كړم نوله دي څخه يوه مياشت ياله يوي مياشتې څخه زيات وخت مراددى ولى چې مياشتې اوله دي څخه زيات وخت ته په عرف كې مدت بعيدويل كيږي .

(٨)كه چاقسم واخيست چې والله زه به دفلان قرضه نن اداء كړم بياده نن اداء كړي مگر قرضخواه ته يې دراهم زيوف (زيوف هغه دراهم دي كوم چې تجارخوقبولي مگربيت المال يې نه اخلي ) يانبهرجه (نبهرجه هغه دراهم دي كوم چې نه بيت المال اونه تجارقبولوي مگرداچې څوک يې په تساهل كولوسره واخلي )اداء كړل ياكوم دراهم چې ده اداء كړل دهغوكوم بل كس مستحق بنكاره شونو حالف نه حانث كيږي ولى چې شرط موجودشوپه دي وجه چې زيوف اونبهرجه ددراهمو له جنس څخه دي بى شكه عيب داردي مگردعيب په وجه جنس نه معدوميږي .اودمستحق دبنكاره كيدلوپه صورت كې دقرضخواه په دراهموقبضه كول صحيح ده اودحالف قسم له يوځل پوره كيدلو څخه وروسته دراهم مستحق ته په واپس كولوسره دقسم پوره والى نه رديږي .

(٩)قوله ولورصاصااوستوقة لااى لوقضاه رصاصااوستوقة لايبرفى يمينه ،يعنى كه يې په مذكوره بالاصورت كې قرضخواه ته رصاص دراهم (سرپ)اداءكړل ياستوقه دراهم (كوټه درهم په كوم چې دسپينوزرو ملمع وي )اداء كړل نوحالف حانث كيږي ولى چې رصاص اوستوقه ددراهمو له جنس څخه نه دي .

(۱۰)كه په مذكوره بالاصورت كې حالف دقرض په عوض پرقرضخواه باندي كوم شئ خرڅ كړنو دادقرض اداء كولو په حكم كې ده لهذا په دي قسم پوره كيږي ولې چې دقرض داداء كولو يو طريقه دا هم دہ چې په خپل منځ كې مقاصه سره وكړي يعنې باهمې تبادله وكړي او دا خبره په بيع كې متحققه شوه .

(۱۱)قوله لاالهبة اى ليس هبة الدين لقضاء للدين ،يعنى كه حالف ته قرضخواه خپل قرض هبه كړنو دادقرض اداء كولو په حكم كې نه ده لهذا دده قسم پوره نه شو ولې چې قرض اداء كول دمقروض فعل دی او هبه كول دقرضخواه له طرف څخه قرض ساقطول دي لهذا حالف حانث كيږي .

(۱۲)لايقبض دَيْنَهُ دِرْهَمًادُونَ دِرْهَمٍ فَقَبَضَ بَعْضَهُ لايَحْنَثُ حتى يَقبِضَ كُلَّهُ مُتَفَرِّقًا(۱۳)لا بِتفْرِيقٍ ضَرُورِيٍّ(۱۴)إنْ كانَ لِي إلاّ مِائَةٌ او غَيرُ او سِوَىٰ فَكَذَا لمْ يَحْنَثْ بِمِلْكِهَا او بَعْضِهَا

**ترجمه** :قبض به نه كړم خپل قرض يو يو درهم بيا يې بعض قبض كړنو نه حانث كيږي ترڅو چې قبض كړي ټول قرض په متفرق ډول ،ماسواله تفريق ضروري څخه ،كه زما سره مال وي مګر سل يا غيرله سلو يا ماسواله سلونو داسې دی نو نه نه حانث كيږي دسلو يا دهغه دبعضو په ملكيت سره ..

**تشريح** :(۱۲)كه چا قسم واخيست چې والله زه به قرض په دي ډول قبض نه كړم چې بعض قبض كړم او بعض قبض نه كړم (يعنې خپل قرض به متفرق وصول نه كړم )بيا ده بعض قرض قبض كړنو نه حانث كيږي ترڅو چې ټول قرض پرمتفرق ډول قبض نه كړي ولې چې دحنث شرط دا دی چې ټول قرض په وصف تفريق سره قبض كړي .

(۱۳)قوله لابتفريق ضروري اى لايحنث اذا قبضه متفرقا بتفريق ضروري .يعنى په ضروري تفريق سره حالف نه حانث كيږي مثلاً كه ده په مذكوره بالاصورت كې خپل قرض په دوه ځله ټول كولو سره وصول كړاو د دواړو ټولونو په منځ كې په كوم بل كارمشغول نه شو صرف په عمل تول مشغول وو نو دتول په وجه چې په وصولولو كې كوم تفريق راغلی دی دهغه اعتبار نشته ولې چې كله كله دټول قرض په يو ځل وصول كول عادة محال وي نو دومره تفريق مستثنى دی لهذا ددي په وجه حالف نه حانث كيږي .

(۱۴)كه چا داسې قسم واخيست چې كه زما سره مال وي مګر سل روپۍ ،يا له سلو روپو څخه علاوه ،يا له سلو روپو څخه ماسوانو زما ښځه طلاقه ده نو كه دده په ملك كې سل روپۍ وي يا بعض يعنى له سلو څخه لږنو نه حانث كيږي ولې چې په عرف كې ددي كلام مطلب دا فهميږي چې له ده سره ترسلو روپو زياتې نشته لهذا ترسلو روپو پوري نه حانث كيږي هو كه له سلو څخه زياتې وي نو حانث كيږي ولې چې او س شرط حنث موجود شو .

(۱۵)لايَفعلُ كَذَاتَرَكَهُ أبدًا لَيَفْعَلَنَّهُ بَرَّ بِمَرَّةٍ(۱۶)وَلَوْ حَلَّفَهُ وَالٍ لَيُعْلِمَنَّهُ بِكُلِّ دَاعِرٍ دخل البَلَدَ تَقَيَّدَ بِقِيَامِ ولايَتِهِ(۱۷)بِبِرِّ بِالْهِبَةِ بِلا قَبُولٍ بِخِلافِ البَيعِ(۱۸)لايَشَمُّ رَيحَانًا لايَحْنَثُ بِشَمِّ وَرْدٍ وَيَاسَمِينٍ(۱۹)البَنَفْسَجُ وَالْوَرْدُ على الوَرَقِ

**ترجمه** :دا كار به نه كوي نو دهميشه لپاره به يې پريږدي ،دا كار به ضرور كوي نو بری كيږي په يو ځل كولو سره ،او كه حاكم قسم وركړ چې ضرور به مې خبروي په هر داسې مفسد باندي كوم چې ښارته داخليږي نو مقيد به وي دا قسم دده په حكومت پوري ،بری كيږي په هبه بلا قبول سره ،په خلاف دبيع ، ريحان به نه بويوي نو نه حانث كيږي دګلاب او چنبيلې په بويولو سره ،بنفشه او ګلاب په پاڼو محمول دي .

**تشريح**:(۱۵)که چاقسم واخیست چې والله لاافعل کذا(والله زه به فلانی کارونه کړم )نوداکاربه دهمیشه لپاره پرېږدي ولی چې داقسم پرنفی واقع شوی دی اونفی په کومه زمانه پوري نه مختص کیږي لهذاداپه تابید محمول دی ،اوکه چاقسم واخیست چې والله لافعلن کذا(والله زه به فلانی کاروکوم )نوپه یوځل هغه کارکولوسره قسم پوره کیږي ولی چې مقصودایجادفعل دی کوم چې ده وکړ.

(۱۶)که حاکم له چاڅخه قسم واخیست چې کوم مفسدکس چې ښارته داخلیږي ته به ذهغه اطلاع راکوي نوداقسم دحاکم دحکومت تربقاء پوري دی ولی چې دحاکم مقصودپه دي سره دمفسدینو دفساددفع کول دي اوداد حکومت په دوران کې وي له حکومت څخه وروسته ده لره دفساددفع ممکنه نه ده ،لهذاکه حاکم مړشویامعزول شونویمین ختمیږي اوکه دوهم ځل حاکم جوړشونوقسم عودنه کوي .

(۱۷)که چاداسې قسم واخیست چې زه به دافلانی شئ فلان ته هبه کوم بیاده هبه کړنوچاته چې یې هبه کړی دی دهغه له قبلولوڅخه بغیردده قسم پوره کیږي ولی چې هبه تملیک بلاعوض ده لهذاصرف دواهب په عمل سره پوره کیږي ،پاتې شوه دموهوب له قبلول هغه حکم هبه یعنی دملک لپاره شرط دی اوشرط حنث هبه ده نه دهبې حکم ،اوکه یې دبیع په باره کې قسم واخیست چې والله زه به دافلانی شئ په فلان خرڅوم بیایې خرڅ کړ مګرمشتری تراوسه قبول کړی نه دی نودمشتری له قبولیت څخه وړاندې حالف نه حانث کیږي ولی چې بیع معاوضه ده اومعاوضه دجانبین دفعل تقاضاکوي صرف په یوه سره نه تامیږي .

(۱۸)که چاداسې قسم واخیست چې والله زه به ریحان نه بویوم نودی دګلاب اوچنبیلې په بویولوسره نه حانث کیږي ولی چې ریحان دهغه خوشبولرونکي وښونوم دی کوم چې تنه نه لري حال داچې په ګلاب اوچنبیلې کې تنه وي ،همداراز خوشبوپه ګلاب اوچنبیلې کې نه وي بلکه ددوئ په ګلانوکې وي حال داچې ریحان په خپله خوشبوداردی،

(۱۹)اوکه چادګلاب اوبنفشه په بویولوقسم واخیست نوداقسم ددي دواړوګلانوپه پاڼودی ددوئ په عرق یاتیل وغیره باندې نه دی ولی چې له ورداوبنفشه څخه په عرف کې ګل مرادیږي اودایمانومداربرعرف دی ،له بنفشه څخه دګل مرادیدل داهل عراق عرف دی ،داهل کوفه په عرف کې له بنفشه څخه دده تیل مراددي.

(۲۰)حَلَفَ لَا یَتَزَوَّجُ فَزَوَّجَهُ فُضُولِيٌّ وَأَجَازَ بِالْقَوْلِ حَنِثَ وَبِالْفِعْلِ لَا (۲۱)وَدَارُهُ بِالْمِلْکِ وَالْإِجَارَةِ (۲۲)حَلَفَ بِأَنَّهُ لَا مَالَ لَهُ وَلَهُ دَیْنٌ عَلَی مُفْلِسٍ أَوْ مَلِيءٍ لَا یَحْنَثُ

**ترجمه**:قسم یې واخیست چې نکاح به نه کوي بیاکوم فضولی دده نکاح وکړه اوده اجازه ورکړه په ژبه سره نوحانث کیږي اوپه فعل سره نه حانث کیږي ،اودمکان اعتبارپه ملک او اجاره سره دی ،قسم یې واخیست چې زه مال نه لرم حال داچې دده قرض شته پرمفلس یاتال متمول کونکې باندې نونه حانث کیږي.

**تشريح**:(۲۰)که چاوویل والله زه به نکاح ونه کړم بیاکوم فضولی دده نکاح وکړه اوده په ژبه سره اجازه ورکړه مثلاوي ویل دانکاح ماته منظوره ده نوحانث کیږي ولی چې انتهاء په ژبه سره اجازه ورکول له ابتداء څخه ده لره وکیل جوړول دي نوپه حقیقت کې حالف فضولی وکیل جوړکړی دی اوپه باب نکاح کې دوکیل حیثیت محض دسفیراومعبردی اوددي حقوق دموکل پرذمه دي نه دوکیل پرذمه نوګویاپه خپله موکل

مباشرت كړی دی په دي وجه حانث كيږي ،اوكه حالف په فعل سره اجازت وركړمثلاددي ښځې مهريې وركړيايې له دي سره صحبت وكړنونه حانث كيږي ولی چې ده قسم پرتزوج اخيستی دی اومهرورکول ياصحبت كول تزوج نه دی.

(۲۱)ديوچاكورهغه دی دكوم چې دی مالک وي يايې په كرايه نيولی وي نوكه چاقسم واخيست چې والله زه به دفلانی كورته ورنه شم بياحالف دفلانی مملوک كورته ورغی ياپه كرايه نيولی كورته ورغی نوحانث كيږي ولی چې په عرف كې له كورڅخه مراددهغه داوسيدلوځای دی خواه كه دده ملک وي اوكه يې په كرايه نيولی وي.

(۲۲)كه چاداسې قسم واخيست چې والله زماسره مال نشته حال داچې دكوم مفلس يامالدارتمال متهول كونكې (نه وركونكې )پرذمه دده قرض شته نوداكس ددي قرض په وجه نه حانث كيږي ولی چې په عرف كې دين (قرض )ته مال نه ويل كيږي بلكه دادمقروض پرذمه يووصف دی .

## كِتَابُ الْحُدُودِ

### داكتاب دحدودوپه بيان كې دی

حدود دحد جمع ده اوحدپه لغة كې دمنع په معنی دی اوڅوكيدارته حدادځكه ويل كيږي چې هغه خلک له دخول څخه منع كوي ،دشريعت په اصطلاح كې حديوي داسې متعينې سزاته ويل كيږي كومه چې دزجرلپاره دالله تعالی لپاره واجب شوي وي.

په حدودواوايمانوكې مناسبت دادی چې څرنګه چې ايمان له عمل څخه مانع دي په دي شرط چې يمين پرنفي وي همداشان حدودهم له مجرمانه افعالوڅخه مانع دي بياحدودپردوه قسمه دي يوقسم هغه دي چې خالص دالله تعالی حق دي لكه حدزنا،اوحدخمر،اودوهم قسم هغه دي په كومه كې چې دبنده حق هم شامل وي لكه حدقذف،مصنف رحمه الله اولنی قسم پيل كړياڅرنګه چې په حدودوكې ترټولوقوی حد زنادی په دي وجه مصنف رحمه الله دحدزنابيان له ټولوڅخه وړاندي ذكركړ.

**الحكمة** :ان الله سبحانه وتعالى وان كان قد جعل لمن يرتكب الذنوب والآثام عقابا يوم القيامة الا ان ذالک لايمنع الناس عن ارتكاب مايضر بالمصلحة الخصوصية والعمومية في الحياة الدنيا وايضا ان من الناس من له قوة وسلطان لايقدر المظلوم الضعيف على اخذ حقه منه وبذالک تضيع الحقوق ويعم الفساد من اجل ذالک وضعت الحدود وضعا شرعيا كافلا لراحة البشر في كل زمان ومكان حتى تمنع الجرائم التي ترتكب وكل فعل يحدث في الارض فسادا لايمكن اصلاح هذا الا بالعقوبة.(حكمة التشريع)

(۱) الْحَدُّ عُقُوبَةٌ مُقَدَّرَةٌ لِلّٰهِ تَعَالَى (۲) وَالزِّنَا وَطْءٌ فِي قُبُلٍ خَالٍ عَنْ مِلْكٍ وَشُبْهَتِهِ (۳) وَيَثْبُتُ بِشَهَادَةِ أَرْبَعَةٍ بِالزِّنَا (۳) لَا بِالْوَطْءِ وَالْجِمَاعِ (۵) فَيَسْأَلُهُمُ الْإِمَامُ عَنْ مَاهِيَّتِهِ وَكَيْفِيَّتِهِ وَمَكَانِهِ وَزَمَانِهِ وَالْمَزْنِيَّةِ (۶) فَإِنْ بَيَّنُوهُ وَقَالُوا رَأَيْنَاهُ وَطِئَهَا كَالْمِيلِ فِي الْمُكْحُلَةِ وَعُدِّلُوا سِرًّا وَجَهْرًا حُكِمَ بِهِ

**ترجمه** :حد هغه سزاده كومه چې مقرره كړل شوي وي دالله تعالی لپاره ،اوناداسې وطی ده كومه چې په داسې شرمگاه كې وي چې له ملک اوشبه ملک څخه خالي وي ،دڅلوروكسانوپه ګواهې سره ثابتيږي په لفظ زناسره ثابتيږي ،نه په لفظ دوطی اوجماع سره ،نوامام دي له دوئ څخه پوښتنه وكړي دماهيت زنااوكيفيت زناپه باره كې ،دمكان اوزمان اومزنيه په باره كې ،نوكه دوئ بيان كړي چې موږدی له مزنيه سره

په دې ډول وطی کولو ولیدی لکه سلائی په رنجلومه (سرمه دانی) کې او ددوئ تعدیل وشې خفیه او علانیه نو حاکم دې دزناکیدلو حکم وکړي.

**تشريح**: (۱) مصنف رحمه الله د حد شرعی تعریف په دې ډول کړی دی چې حد په اصطلاح دشریعت کې هغه مقرره شوی سزاده کومه چې خالص دالله تعالی دحق په ډول سره حاصلیږي ،نو قصاص ته حد نه ویل کیږي ولی چې قصاص که څه هم عقوبت دی مګر داحق انسان دی هغه دا ساقطولی هم شي او دهغه عوض هم اخیستلی شي ،همداشان تعزیرته هم حد نه ویل کیږي ولی چې په تعزیر کې سزا مقدره او متعینه نه ده .

(۲) مصنف رحمه الله د مطلق زنا تعریف کړی دی چې زنا داسې وطی ته ویل کیږي کومه چې په داسې شرمګاه کې وي چې هغه له ملک او شبه ملک څخه خالي وي ،پاتې شوه هغه زنا کومه چې موجب حد ده ،هغه ده هغه وطی نوم دی کومه چې له مکلف څخه په خوښې دداسې مشتهاتې ښځې په شرمګاه کې وشي چې نه هغه ددې مکلف په ملک کې وي (یعنی نه هغه ښځه ددې واطی کوروالاوي او نه دده مینځه وي) او نه دملک شبه وي .دمکلف په قیدسره احتراز وشو دصبی اومجنون له وطی کولو څخه ، اودمشتهات په قیدسره احتراز وشوله صغیري اومیتې اوځاروی سره له وطی کولو څخه ،اوپه ملک سره له منکوحې اومینځې سره له وطی کولو احتراز وشو ،اوپه شبه ملک سره احتراز وشو دخپل زوی له مینځې سره له وطی کولو څخه اودخپل ماذون غلام له مینځې سره له وطی کولو څخه ،ولی چې په دوئ کې شبه ملک ده همدا وجه ده چې له دوئ سره وطی کول موجب حد نه دي.

(۳) زنا دڅلوروګواهانو په ګواهي سره ثابتیږي لقوله تعالی ﴿ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِنْكُمْ ﴾ (پر داسې ښځو له خپلو څخه څلورګواهان طلب کړئ) ،همدا راز ځکه چې علم قطعی ته رسیدل محال دی په دې وجه په دلیل ظاهرسره اکتفاء کیږي، اودګواهي صورت دادی چې څلور ازاد او عادل نارینه په یوه مجلس کې په کوم نارینه یا ښځې باندې دزنا ګواهي ورکړي .

(۴) قوله لابالوطی والجماع ای لایثبت الزنا بالوطی والجماع ،یعنی شرط دادی چې ګواه به دګواهي ورکولو په وخت کې په لفظ زنا ویلو سره ګواهي ورکوي ولی چې په دې حرام فعل باندې لفظ زنا صراحة دلالت کوي نو که ګواهانو داسې وویل چې فلان وطی وکړه یا یې جماع وکړه نو په دې سره زنا نه ثابتیږي ولی چې لفظ وطی او جماع په فعل حرام کې صریح نه دي .په دې کې ااحتمال هم دی چې ده له دې اجنبی ښځې سره وطی او جماع فیمادون الفرج کړي وي .

(۵) بیا به له دې ګواهي څخه وروسته امام له ګواهانو پوښتنه وکړي چې زنا څه شئ ده ؟ولی چې له فعل زنا څخه په غیر باندې هم د زنا اطلاق کیږي لکه العینان تزنیان (سترګې زنا کوي) نو کیدای شي چې ګواه دې دسترګو زنا ته زنا ویلې وي .بیا دې امام له ګواهانو څخه دکیفیت زنا په باره کې پوښتنه وکړي ولی چې صرف په تماس الفرجین باندې هم دزنا اطلاق کیږي نو کیدای شي چې ګواه پر تماس الفرجین باندې دزنا ګواهي ورکوي حال دا چې پر دې حد نشته .بیا دې دمکان زنا په باره کې له ګواهانو پوښتنه وکړي ولی کیدای شي چې دا زنا په دار الحرب کې شوې وي پر کومه چې حد نشته .اوداپوښتنه دې وکړي چې څه وخت

يې زناوکړه ؟ولی کیدای شي چې ده دي په قدیم زمانه کې زنی کړي وي په کومه کې چې هم حدنشته .
اوداسوال دي وکړي چې له کومې ښځې سره يې زناکړي ده ؟ولی کیدای شي چې ده دي دخپل زوی له
مینځې سره زناکړي وي یادي له مشترکې مینځې سره زناکړي وي په کومه کې چې حدنشته .

(۶)نوکله چې ګواهان ددي ټولوسوالونوصحیح ځواب ورکړي اوووایي چې موږداکس ولیدی
چې له دي ښځې سره يې په فرج کې وطی وکړه په دي ډول لکه په سرمه دانۍ کې چې سلائي وي،نوقاضي
دې دګواهانودظاهري اوباطني حالت په باره کې تحقیق وکړي ،چې داګواهان عادل مقبول الشهادة دي
اوکه نه دي ؟داددي لپاره ترڅوپه کومه وجه دحد ددفع کولوصورت پیدا شي ولی چې نبی کریم ﷺ فرمایي﴿
ادرؤا الحدود مااستطعتم﴾ نوکه سرااوعلانیة ددوئ عادل والی بیان شونوقاضي دي ددوئ په ګواهي سره
دزنادثبوت حکم وکړي ولی چې اوس حقیقت بالکل ظاهرشو .

(۷) وبالإقرار أربعا في مجالسه الأربعة كلما أقر رده (۸) وسأله كما مر (۹) فإن بينه حد (۱۰) فإن رجع عن إقراره قبل الحد أو في وسطه خلي سبيله (۱۱) وندب تلقينه لعلك قبلت أو لمست أو وطئت بشبهة

**ترجمه** :اونا(ثابتيږي )دزانی په څلورځله اقرارکولوسره دزانی په څلورومجلسونوکې کله چې هم دی
اقراروکړي حاکم دي ردکړي ،اوله ده څخه دي دزناوغیره اموروپه باره کې سوال وکړي لکه څرنګه چې
تیرشو،نوکه ده مذکوره اموربیان کړل نوحد دي پرې جاري کړي ،بیاکه هغه له خپل اقرار څخه رجوع وکړي له
حد څخه وړاندې یادحدپه منځ کې نوحاکم دي دی پریږدي ،اومستحب ده زانی ته داتلقین کول چې
شاید تامچه اخیستې وي یاتا مس کړی وي یاتاپه شبه سره وطی کړي وي .

**تشریح** :(۷)قوله وبالاقرار ای یثبت الزنابالاقرار الزانی ،یعنی خپله دزانی په اقرارسره هم زناثابتیږي ولی چې اقرار
پرمقرحجت دی .خاص کرهغه اقرارچې په هغه سره مقرته ضرر اوعارلاحق کیږي ،داقرارصورت دادی چې
عاقل بالغ پرخپل ځان باندې په څلورومجلسونوکې دزنی اقراروکړي هغه چې په اولنیودریو وارونوکې کله
هم اقراروکړي نوهرځل دي قاضي ردکړي ولی چې نبی کریم ﷺ دحضرت ماعزاسلمی ﷺ دري ځله
اقراردفرمایلې وو په څلورم ځل اقرارکولویې حدجاري فرمایلې وو .

(۸)بیاچې کله دده اقرارڅلورځله پوره شي نوقاضي دي له ده څخه دزنی په باره کې پوښتنه وکړي
چې زناڅه ده اودکیفیت زناپه باره کې دي پوښتنه وکړي چې زنی څرنګه کیږي اوداسوال دي وکړي چې له
کومې ښځې سره دي زناوکړه ،همداشان دزمان اومکان زناپه باره کې دپوښتنه وکړي لمامر .

(۹)بیاچې کله هغه ددي ټولوسوالونوسم ځواب ورکړي نوپرده دي حدجاري کړي ولی چې حجت
پوره شو،اوداشرط چې مقربه عاقل اوبالغ وي ځکه ولګول شوچې دصبی اومجنون اقرارمعتبرنه دی
.اودخپل مجلس قیدځکه ولګول شوچې اقرارقائم بالمقردی په دي وجه دده مجلس معتبردی نه دقاضي
مجلس .

(۱۰)دچازناچې دده په اقرارثابته وي هغه که له اجراء حدڅخه وړاندې یادحدپه منځ کې له خپل
اقرارڅخه رجوع وکړي نوهغه دي پریښودل شي ولی چې له اقرارڅخه رجوع کول هم یوخبردی په کوم کې

چې دربنتياوالى احتمال هم شته كمافى الاقرار اوپه رجوع كولوكې څوک دده تكذيب كونكى هم نشته لهذا په اقراركې شبه پيداشوه والحدودتندرئ بالشبهات (يعنى حدود د شبه په وجه سره دفع كيږي).

(۱۱)امام لره مستحب ده چې كوم څوک چې دزنى اقراركوي هغه ته دي درجوع عن الاقرار تلقين وكړي هغه ته دي داسې ووايې چې شايدتاله دي ښځې څخه صرف مچه اخيستې وي يادي صرف مس كړې وي ياتاپه شبه سره وطى كړې وي ولى چې نبى كريم ﷺ ماعز رضي الله عنه ته ويلې وو چې شايدتادهغې څخه مچه اخيستې وي يادي هغه مس كړې وي.

**الحكمة** :الزناجريمة الجرائم واصل المفاسدوهومن الكبائروالحكمة فى تحريمه من وجوه منهاحفظ الانساب لانهااذاضاعت لم تكن هناک شعوب وقبائل وبطون والفخاذوعشائر فيفقدالتعارف الذى اراده الله تعالى بقوله (ياايهاالناس اناخلقناكم من ذكروانثى وجعلناكم شعوباوقبائل لتعارفواان اكرمكم عندالله اتقاكم )ومنهاصيانة الاعراض من ان ينتهک فكم عرض انتهک فانزل العائلة من اعلاشرفات المجدالى اسفل دركات الضعة والاذلال وسوء السمعة ومنهاالرحمة بالولدلان ولدالزنااماان يموت صغيرالفقدمن يعتنى به لامتهانه واحتقاره واماان يعيش فى حالة مرذولة ممقوتة لفقدالتربية وعدم الاب وربماصارسفاكاللدماء مخلابالامن العام واذاتعلم وربح الاموال فانه يعيش بين الناس ذليلاكاسف البال اذاافتخرالناس بالانساب والاحساب وشرف الابوة والعمومة والخولة ومادام الانسان كذالک فالحياة مريرة ومن اجل ذالک لايصفوالفكرولاتتوجه النفس لاصلاح امرى الدنياوالدين (حكمة التشريع).

(۱۲)فإن كان محصنا رجمه في فضاء حتى يموت(۱۳)يبدأ الشهود به فإن أبوا سقط(۱۴)ثم الإمام ثم الناس ويبدأ الإمام لو مقرا ثم الناس(۱۵) ولو غير محصن جلده مائة ونصف للعبد(۱۶)بسوط لا ثمرة له متوسطا(۱۷)ونزع ثيابه وفرق على بدنه إلا رأسه ووجهه وفرجه

**ترجمه** :نوكه هغه محصن وي نوهغه دي سنګساركړي په خلاص ميدان كې ترڅوچې مړشې ،اودرجم كولوابتداء دي ګواه وكړي بياكه هغوى انكاروكړنوحدساقطيږي ،بياحاكم بيانورخلګ اوحاكم دي شروع كړي كه زانې اقراركونكى وي بياخلګ ،اوكه غيرمحصن وي نوسل دُري دي ووهې اونيمايې دي كړي غلام لره ،په داسې دُره چې په هغې كې غوټه نه وي په متوسط وهلوسره ،اوودي ايستل شې دهغه جامې اودُري دي دهغه پربدن متفرقې ووهل شې مګرپرسر،مخ اوشرمګاه دي نه وهې.

**تشريح** :(۱۲)كه زانې محصن وي (محصن هغه عاقل بالغ اوازادمسلمان دى چې په نكاح صحيح سره يې وطى كړې وي) نو(وروسته له ثبوت زنا)حاكم دي دى دكوم خلاص ميدان طرف ته وباسې اوپه ډبرودي سنګساركړي ترڅوچې مړشې ولى چې نبى كريم ﷺ ماعزبن مالک اسلمى رضي الله عنه دحره يابقيع طرف ته ايستلى اورجم كړى وو ،اودنبى كريم ﷺ ارشاددى لايحل دم امرء مسلم الاباحدمعان ثلاث كفربعدالايمان وزنابعدالاحصان وقتل نفس بغيرالحق.

(۱۳)بياكه دزانى زناپه ګواهانوسره ثابته وي نوترټولوړاندې دي ګواهان دى په ډبرو ويلې ولى چې كله ګواه ددرواغوپه ګواهې جرأت كوي بياده لره دقتل په حالت كې په ليدلوسره دده دقتل په شان عظيم ګناه له ارتكاب څخه په ويره سره له ګواهې څخه راګرځي نوپه ګواه سره په شروع كولوكې ددفع حدحيله راووځي ،اوكه ګواه له ابتداء بالرجم څخه منع شول نوحدساقطيږي ولى چې ددوئ منع كيدل درجوع عن الشهادة دليل دى.

(۱۴)بيالدګواهانوڅخه وروسته كه امام حاضروي نوهغه دي تعظيماپه ډبرو ويلې ،بياعام خلګ كوموچې دګواهانو شهادت ليدلى دى ياقاضى هغوئ ته درجم كولواجازت وركړي وي.اوكه دزانى زناده

په اقرارثابته شوي وي نوپردې دي دبري وارول امام شروع کړي بیادي نورخلک دبري وارکړي ولی چې غامدیه ښځه نبی کریم ﷺ په خپله دنخودپه اندازه په ډبره سره ویشتلې وه اوغامدیه ښځې په خپله دزنی اقرارکړی وو.

(۱۵)که دزانی زناپه څلورګواهانوياده په اقرارسره ثابته شې اوانی محصن نه وي اوازادوي نوده حدسل دُرې دی لقوله تعالی﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ﴾ (یعنی زانیه ښځې اوانی کس هریوه ته سل دُرې ورکړئ). اوکه زناکارکوم غلام یامینځه وي نودهغه حدپنځوس دُرې دی وجه یې داده چې رقیت لکه څرنګه چې دنعمت تنصیف کوي همداشان دعقوبت تنصیف هم کوي.

(۱۶)قوله بسوط لاثمرة له ای جلده بسوط لاعقدله ،یعنی بیادي امام په متوسط ضرب سره په داسې دُرې دزانی دوهلوحکم وکړي چې په هغې کې غوټه نه وي ولی مروی ده چې حضرت علی ﷺ دحددوهلوپه وخت کې ددُرې غوټې پرې کولې ،اودمتوسط ضرب قیدځکه ولګول شوچې له ضرب شدید څخه دهلاکت خطره ده ،اوپه انتهائي معمولي ضرب سره مقصود(انزجار)نه حاصلیږي.

(۱۷)دحددجاري کولوپروخت دي دده جامې ماسواله ازارڅخه وکښل شې ولی چې حضرت علی ﷺ به دحدوددجاري کولوپروخت دجامودایستلوحکم کاووولی چې له جاموایستلو څخه بغیردضرب اثرمضروب ته نه رسیږي .اوپرمتفرق اعضاء دي ووهې ولی چې په یوعضوپه وهلوکې دعضودضائع کیدلوخطره ده .البته په سر،مخ اوشرمګاه دي نه وهې ولی چې سرمجمع الحواس دی نودکوم حس دضائع کیدلوخطره ده اومخ مجمع المحاسن دی نودحسن دزائلیدلوخطره ده اوشرمګاه مقتل دی په کوم سره چې دانسان دتلف کیدلوخطره ده.

(۱۸)وَيُضْرَبُ الرَّجُلُ قَائِمًا فِي الْحُدُودِ وَغَيْرِ مَمْدُودٍ(۱۹)وَلَا يُنْزَعُ ثِيَابُهَا إِلَّا الْفَرْوَ وَالْحَشْوَ(۲۰)وَتُضْرَبُ جَالِسَةً وَيُحْفَرُ لَهَا فِي الرَّجْمِ لَا لَهُ (۲۱)وَلَا يَحُدُّ عَبْدَهُ إِلَّا بِإِذْنِ إِمَامِهِ(۲۲)وَإِحْصَانُ الرَّجْمِ الْحُرِّيَّةُ وَالتَّكْلِيفُ وَالْإِسْلَامُ وَالْوَطْءُ بِنِكَاحٍ صَحِيحٍ وَهُمَا بِصِفَةِ الْإِحْصَانِ

**ترجمه**:او وهې دي نارینه په حدودوکې په ولاړه سره څملوي دي نه ،اونه دي ایستل کیږي دښځې جامې ماسواله پوستین اوورې لرونکی شئ څخه ،اوښځه دي وهې په ناسته سره اوغاردي وکیندل شې ښځې لره په رجم کې نه نارینه لره،اوحددي نه جاري کیږي په غلام مګردامام په اجازه ،اودرجم لپاره محصن والی ازادمکلف اومسلمان والی دی اوپه نکاح سره یې په دي دول وطی کړي وي په داسې حال کې چې دواړه په صفت احصان وي.

**تشریح**:(۱۸)یعنی په ټولوحدودوکې دي نارینه په ولاړه وهې لقول علي رضي الله عنه یضرب الرجال في الحدود قیاما والنساء قعودا(په حدودوکې دي نارینه په ولاړه سره وهل کیږي اوښځه په ناسته سره )،همدارازدحدجاري کولومبنی پرتشهیرده اوپرنارینه په ولاړه سره په حدجاري کولوکې تشهیرډیرزیات دی ،په ځمکه دي نه څملوي ولی چې په دي کې په واجب حدباندي زیادت دی کوم چې جائزنه دی.

(۱۹)البته له ښځې دي جامې نه باسې له کشف عورت څخه دساتنې په خاطرهوپوستین .او پنډي (حشوله وریوڅخه جوړي شوي جامې ته ویل کیږي )جامې دي وباسې ولی چې دامضروب ته دضرب له اثرڅخه مانع دي اوسترعورت له دي څخه بغیرهم حاصل دی.

(۲۰)اودحدجاري كولوپروخت دي ښځې كښينوي لماروينا،همداراز په دي كې له بې پردګې څخه حفاظت هم دی.درجم په صورت كه دښځې لپاره غاروكيندل شي نوجائز بلكه احسن دی ولی مروی ده چې په غامديه ښځې دحدجاري كولوپروخت دي لره غاركيندل شوی وو،همداراز په دي كې دښځې لپاره پرده پوشي ده ،مګردنارينه لپاره دي غارنه كيندل كيږي ولی چې مبنی الحدودعلی التشهيرده.

(۲۱)مولی پرغلام اومينځه حدنه شي جاري كولی مګردامام په اجازه سره ولی چې حدجاري كول دالله تعالی حق دی لهذادشريعت له طرف څخه مقررشوي نائب ماسواكوم بل چاته دحددجاري كولوحق نشته .اوامام اوقائم مقام امام څرنګه چې دشريعت له طرفه نائب دی په دي وجه ده ته دحددقائمولوحق حاصل دی.

(۲۲)اودرجم لپاره دنارينه اوښځې دواړومحصن والی ضروري دی دمحصن والی معنی داده چې انسان ازاد، عاقل، بالغ،مسلمان وي ،چاچې له كومې ښځې سره په نكاح صحيح كولوسره وطی كړي وي په داسې حال كې چې دواړه په صفت احصان قائم وي،نوعاقل اوبالغ والی خوداهليت سزا شرطونه دي ولی چې له دي څخه بغيردباری تعالی خطاب نه متوجه كيږي اوباقې امورځكه شرط دي چې دكامل نعمت په وجه سره جرم هم كامل وي حال داچې مذكوره امورله لويو نعمتونو څخه دي لهذا چاته چې مذكوره لوی نعمتونه حاصل وي دهغه سزابه كامله وي يعنی هغه به رجم كيږي. اوددواړوپه صفت احصان سره دقائم والی مطلب دادی چې ددخول پروخت كوم يونابالغ ،مجنون ،اوكافرنه وي ولی چې په دي شيانوكې كه يو موجودشونودرغبت دكم والی په وجه سره نعمت كامل نه دی.

(۲۳)وَلَايُجْمَعُ بينَ جَلْدٍ وَرَجْمٍ (۲۴)وَجَلْدٍ وَنَفْيٍ وَلَوْ غَرَّبَ بِمَا يَرَى صَحَّ (۲۵)وَالْمَرِيضُ يُرْجَمُ وَلَا يُجْلَدُ حتى يَبْرَأَ (۲۶)وَالْحَامِلُ لَاتُحَدُّ حتى تَلِدَ وَتَخْرُجَ مِن نِفَاسِهَا لو كان حَدُّهَا الْجَلْدَ

**ترجمه** :اويوځای والی دي نه كيږي په دُرواورجم كې ،اونه په دُرواوجلاوطنی كې اوكه يې جلاوطن كړي دمصلحت په وجه نوصحيح دی ،اومريض دي رجم كړای شي اوپه دُرودي نه وهل كيږي ترڅوچې روغ شي ،اوپرحامله دي حدنه جاري كيږي ترڅوچې هغه ماشوم وزيږوي اوله نفاس څخه ووځي كه ددي حددُري وي

**تشريح** :(۲۳)كوم زانی چې محصن وي پرهغه دحددجاري كولوپروخت دي له رجم سره دُري وهل نه جمع كوي ولی چې نبی كريم ﷺ په حضرت ماعز ﷺ اوغامديه ﷺ ښځه كې دواړه نه ووجمع كړي ، همداراز مقصود(دنوروлپاره زاجروالی)خودزانی په رجم كولوسره حاصليږي ولی چې رجم اخيرنی درجه سزاده په دي وجه دُري وهل بلافائده دي.

(۲۴)قوله وجلدونفی ای لايجمع بين جلدونفی فی البكر،يعنی دبې واده زناكارپه سزاكې دي له سلودُرو سره يوكال جلاوطنې نه جمع كوي يعنی له سل دُرووهلوڅخه وروسته دي ديوكال لپاره بطورحدنه جلا وطن كوي ولی چې له ايت كريمه څخه ده لره صرف سل دُري ثابتې دي پردي دجلاوطنې زياتول پرنص زيادت دی چې جائزنه دی ،البته دتعزيرپه ډول كه دامام په رأيه كې په دي كې څه مصلحت وي نوترڅومره وخت پوري چې دی مصلحت وګڼې جلاوطن دي كړي ولی چې جلاوطنې په ځينوحالاتو كې مفيده وي.

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزد جلا وطني دغیر محصن دحد برخه ده ولی په راویت کې راغلي دي چې نبی کریم فرمایلي دي دغیر محصن حد سل دُرې او یو کال جلا وطني ده ،مروی ده چې حضرت عمر رضي الله عنه یو داسې زاني ته د جلا وطنۍ سزا ورکړه هغه مرتد شو او دارالحرب ته ولاړ ، حضرت عمر رضي الله عنه ته اطلاع ورسیده نو ده رضي الله عنه قسم واخیست چې بیا به هیچاته دجلا وطنۍ سزاورنه کړم نوله دې څخه معلومه شوه چې داسزادبطورحد نه ده بلکه سیاسة او تعزیراً ده .

(۲۵)که مریض زنی وکړه او دی محصن وي دزنې په وجه پرده رجم واجب شوی وي نوده ته به تر روغتیاپورې مهلت نه ورکول کیږي بلکه رجم کیږي به ولی چې دده تلف والی لازم شوی دی نو مرض مانع نه دی ،او که دازانی غیر محصن وي پرده دزنی په وجه دُرې لازمې شوي وي نوترڅوچې دی روغ نه شي په دُرودې نه وهل کیږي ترڅو دمرض په وجه په دُرو وهلو سره هلاک نه شي .

(۲۶)که حامله ښځې زنا وکړه نوترڅوچې ماشوم ونه زیږوي پردې به حد نه جاري کیږي خواه که حد رجم وي او که دُرې وي ترڅو دې ماشوم هلاک نه شي ولی چې ماشوم که څه هم له زنا څخه ده مګر څرنګه چې دماشوم ګناه نشته لهذا هغه دعامو انسانو په څېر محترم دی دکوم چې هلاکت جائزنه دی .او که پرحامله دزنی په وجه دُرې لازمې شوي وي نوترڅوچې داله نفاس څخه پاکه نه شي ترهغه وخت پورې به داپه دُرو نه وهل کیږي ولی چې دا یو قسم مرض دی لهذا تر روغتیاپورې به حد مؤخر کیږي ،او که دد ي حد رجم وي نو دولادت متصل درجم کړای شي ولی چې تاخیر دماشوم په وجه وو او ماشوم خو جلا شو لهذا دمزید تاخیر ضرورت نشته .

## بَابُ الْوَطْءِ الَّذِي يُوجِبُ الْحَدَّ وَالَّذِي لَا يُوجِبُهُ

دباب دداسې وطی په بیان کې دی کومه چې موجب حد ده او کومه چې موجب حد نه ده .
له دې څخه وړاندې حقیقت زنا او کیفیت حد بیان شو په دې باب کې دموجب حد زنا تفصیل بیانیږي چې کوم قسم موجب حد ده او کوم قسم موجب حد نه ده .

(۱) لَاحَدَّ بِشُبْهَةِ الْمَحِلِّ وَإِنْ ظَنَّ حُرْمَتَهُ كَوَطْءِ أَمَةِ وَلَدِهِ وَوَلَدِ وَلَدِهِ (۲) وَمُعْتَدَّةِ الْكِنَايَاتِ {(۳) وَلِشُبْهَةِ الْفِعْلِ إِنْ ظَنَّ حِلَّهُ كَمُعْتَدَّةِ الثَّلَاثِ وَأَمَةِ أَبَوَيْهِ وَزَوْجَتِهِ وَسَيِّدِهِ (۴) وَالنَّسَبُ يَثْبُتُ فِي الْأُولَى فَقَطْ

**ترجمه** :دشبه محل په وجه حد نشته که څه هم یې ګمان وي دهغې دحرمت لکه دخپل زوی یالمسی له مینځې سره وطی کول، او له معتده کنایات سره وطی کول ،او دشبه فعل په وجه سره که یې دهغې دحلال والی ګمان وي لکه له معتدة الثلث سره وطی کول او دمور او پلار له مینځې سره وطی کول یا دخپلې ښځې له مینځې سره وطی کول یا دمولی له مینځې سره وطی کول ،او نسب ثابتیږي صرف په اولنی صورت کې .

**تشریح** :(۱)که دوطی په محل یعنی ښځه کې دحلت شبه وي نوله دې سره په صحبت کولو حد نه واجبیږي که څه هم صحبت کونکی ته ددې دحرام والی ظن غالب وي مثلاً چادخپل زوی یالمسی له مینځې سره وطی وکړه نوپرده حد نشته که څه هم دی وو ایې چې ماته معلومه وه چې داپرما حرامه ده ولی چې دنبی کریم صلی الله علیه وسلم

له فرمان﴿انت ومالک لأبیک﴾(ته او ستا مال ستا د پلار دی)څخه معلومیږي چې د اولاد مال د پلار مال دی نو له دي څخه د حلت شبه پیدا شوه که څه هم بنظر دلیل شرعی د دي حلت ثابت نه دی ،او شبه فی المحل حد لره رافع ده ولی چې والحدود تندرئ بالشبهات (یعنی حدود د شبه په وجه سره دفع کیږي).

(۲)قوله ومعتدة الکنایات ای کوطی معتدة الکنایات ،یعنی که چاخپلې ښځې ته په کنایه الفاظو سره طلاق ورکړاو ښځه په عدت کې وه د عدت په دوران کې ده له دي سره صحبت وکړنو په صحبت کونکي حد نشته ولی چې د لته هم د حلت دلیل موجود دی په دي وجه چې په کنایه الفاظو سره د واقع کید ونکی طلاق په باره کې د صحابه کرامو ﷺ اختلاف دی چې ایا په دوئ رجعی طلاق واقع کیږي او که بائن.

(۳)قوله وبشبهة الفعل ان ظن حله ای لاحد بشبهة الفعل ان ظن حله ،یعنی په فعل کې د شبه په وجه هم حد نه واجبیږي یعنی د نفس صحبت د حلال والی شبه وي په دي شرط چې واطی ته د هغې د حلال والی ظن غالب وي مثلا چاخپلې ښځې ته دري طلاقه ورکړل ښځه عدت تیروي د عدت په دوران کې ده له هغې سره وطی وکړه نو پر واطی حد نشته که څه هم په کتاب الله او اجماع سره ثابته ده چې له دي ښځې سره وطی کول جائز نه ده لیکن که ده لره غالب ګمان د حلال والی وونو پر ده حد نشته ولی چې اثر ملک یعنی د ښځې د خاوند په کور کې عدت تیرول او پر خاوند وجوب نفقه وغیره تر اوسه باقی دي لهذا ده د ګمان اعتبار به کیږي او پر ده به حد نه جاري کیږي ،همداشان د پلار یامور یا خپلې ښځې یا د خپل مولی له مینځې سره که د حلال والی په ګمان سره وطی وکړي نو پر ده حد نشته ولی چې له مور پلار او وجه وغیره سره اتصال املاک موجود وي.

ف:په بنیاد د ول شبه پر دوه قسمه ده ،شبه فی الفعل کومې ته چې فقهاء شبهة الاشتباه هم وایې ،او شبه فی المحل ،د شبه فی المحل صورت دادی چې د کوم شئ حرام ارتکاب چې کول شوی دی د هغه د حرمت نفی کونکی کوم دلیل هم موجود وي مثلا کوم کس د طلاق بائن په عدت کې وطی وکړه ،په دي صورت کې که مجرم د حرمت ګمان لري بیا هم حد نه واجبیږي.

شبه فی الفعل داده چې په حقیقت کې د حرمت په خلاف کوم دلیل موجود نه وي مګر مجرم د خپل قصور فهم په بناء غیر دلیل دلیل متصور کړی وي په داسې صورت کې که مجرم د حلال والی په ګمان سره د زنا ارتکاب کړی وي نو بیا خو پر ده حد نه جاري کیږي او که یې په حرام ګڼلو سره د جرم ارتکاب کړی وي نو حد جاري کیږي،د شبه فی الفعل مثال له دري طلاقه وروسته په عدت کې وطی کول دي چې د عدت په دوران کې د دي نفقه او سکنی د سابق خاوند پر ذمه باقې پاتې کیږي اوس که کوم کس دا د بقاء زوجیت دلیل وګڼي له دي سره وطی وکړي نو دده دا عمل قطعا صحیح نه دی غلط دی لیکن د دي په وجه حد ساقطیږي (قاموس الفقه : ۴/ ۱۸۰).

(۴)او په مذکوره بالا صورتونو کې که ماشوم وزیږیدی نو د ماشوم نسب صرف په اولنی صورت (یعنی شبه فی المحل) کې ثابتیږي په دوهم صورت (یعنی شبه فی الفعل) کې نه ثابتیږي ولی چې په دوهم صورت کې فعل وطی محض زنا ده لهذا نسب نه ثابتیږي ،بې شکه حد زنا له ده څخه ساقط دی په دي وجه

چې معامله پرده مشتبه شوي ده .حال دا چې په اولنی صورت کې فعل وطی محض زنانه ده ولی چې اشتباه په دي صورت کې په محل کې ده لهذا په دي صورت کې نسب ثابتیږي .

(٥) وحدّ بوطءِ أمَة أخيه وعمّه وإن ظنّ حِلّه (٦) وامرأة وجدت في فراشه (٧) لا بأجنبيّة زفّت وقيل هي زوجتك وعليه مهر (٨) وبمحرم نكحها (٩) وبأجنبيّة في غير القبل (١٠) وبلواطة (١١) وبهيمة (١٢) وبزنا في دار حرب أو بغي

**ترجمه** :او حد جاري کیږي د خپل ورور او خپل اکاله مینځې سره په وطی کولو که څه هم دهغې د حلال والی گمان یې وي ،او له داسې ښځې سره په وطی کولو کومه چې دی په خپله بستره کې وموندي ،نه له هغه اجنبیه سره په وطی کولو کومه چې لیږل شوي وي د زفاف په شپه ده ته او ویل شوی وي چې دا ستا ښځه ده او پرده مهر واجب دی ،او له داسې محرمه سره په وطی کولو چې له هغې سره یې نکاح کړي وي ،او له اجنبیه سره په غیر قبل کې په وطی کولو سره ،او په لواطت سره ،او له څاروی سره په وطی کولو ،او په دارالحرب کې په زنا کولو یا په دارالبغی کې په زنا کولو .

**تشریح** :(٥)که چا د خپل ورور یا اکاله مینځې سره وطی وکړه که څه هم دده گمان داوي چې دا زما لپاره حلاله ده نو بیا به هم پرده حد جاري کیږي ولی چې د دوئ په منځ کې اتصال املاک نشته نو شبه حلت هم نشته نو دده د حلال والی گمان غیر معتبر دی ولی چې منسوب الی الدلیل نه دی لهذا پرده به حد جاري کیږي .

(٦) قوله وامرأة وجدها الخ ای وحد بوطی امرأة اجنبية وجدها علی فراشه ،یعنی که چا پر خپله بستره باندي کومه اجنبیه ښځه وموندہ او له هغې سره یې وطی وکړه نو پرده حد واجب دی ولی چې د طول صحبت په وجه په زوجه او غیر زوجه کې اشتباه نه شي کیدای نو دده گمان پر کوم دلیل مبنی نه دی لهذا حد واجبیږي .

(٧) قوله لا باجنبية زفت ای لایحد بوطی اجنبية بعثت الی الزوج وقلن له هی زوجتک الخ ،یعنی که له نکاح څخه وروسته د زفاف په شپه خاوند ته دده د ښځې پر ځای بله ښځه ورولیږل شوه او ښځو ده ته وویل چې دا ستا ښځه ده ده له هغې سره وطی وکړه نو پرده حد نه واجبیږي ولی چې ده پر دلیل اعتماد کړی دی یعنی په موضع اشتباه کې د ښځې په خبرو کولو ولی چې انسان په اول وهلة کې د خپلې ښځې او غیر په منځ کې فرق نه شي کولی نو دی دمغرور (دهوکه شوي )کس په شان دی په دي وجه دده نسب هم ثابتیږي ،هو په دي کس د دي ښځې لپاره مهر لازم دی ولی چې په دارالاسلام کې وطی له حد یا مهر څخه نه شي خالي کیدای ،حد خود شبه په وجه ساقط شو لهذا مهر مثل واجب دی.

(٨) قوله وبمحرمة نکحها ای لایحد بوطی امراة محرمة نکحها ،یعنی که چا له داسې ښځې سره نکاح وکړه کومه چې دهمیشه لپاره پرده حرامه وي بیا یې له هغې سره وطی وکړه نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد پرده حد نه واجبیږي خواه که ده لره د حرمت علم وي او که نه وي ولې چې دعقد نکاح په وجه د حلت شبه پیدا شوي ده ،دصاحبینو او ائمه ثلاثه په نزد که واطی لره د حرمت علم وو نو حد به ورکول کیږي ولی چې د محرماتو حرمت په دلیل قطعی سره ثابت دی .

ف :دصاحبینو پر قول فتوی ده لما فی الهندیة :والشبهة فی العقد فی وطء محرم تزوجها فانه لایحد علیه عند ابی حنیفة ......وعندهما یحد ان علم بالحرمة وان لم یعلم فلا حد علیه وبه اخذ الفقیه ابو اللیث وعلیه الفتوی (الهندیة: ٢/١٤٨)

(۹)قوله وباجنبية في غير القبل اى لايحد بوطي اجنبية في غير القبل ،يعني که چاله اجنبيه ښځي سره په غيرقبل کې جماع وکړه مثلاً خپله آله يې د ښځې په ورانه يانس کې کښيښوده نوپر داسې کس حد نه جاري کيږي ولی چې شرعاً ده لره کوم حد مقرر نه دی بلکه تعزيربه ورکول کيږي ولی چې ده د فعل منکرارتکاب کړی دی.

(۱۰)قوله وباللواطة اى لايحد ايضا باللواطة ،يعني که چاله ښځې سره په مقام مکروه يعني مقعده کې وطی وکړه يايې له کوم مذکرسره لواطت وکړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپرده حدنشته بلکه ده ته به تعزير ورکول کيږي .اود صاحبينوپه نزدلواطت دزنی په څيردی لهذاپرده حدواجب دی ،همدارازله حضرت ابن عباس رضي الله عنه قول دی چې کوم چاله چې تاسې په لواطت کولوسره ومومئ نوفاعل اومفعول دواړه قتل کړئ ،دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې لواطت په حقيقت کې زنانه ده ولی چې دلواطت په سزاکې دصحابه کرامو رضي الله عنهم اختلاف دی چې په اوردي وسوځوي يادي پرده ديوال راچپه کړای شي ،يادي له لوړي ځخه راوغورځوي اوله شادي په دبروويلي وغيرذالک ،نوکه لواطت دزناپه څيروای نوصحابه کرامو رضي الله عنهم به يې په حدکې اختلاف نه وکړی.

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لماقال ابراهيم بن محمدالحلبي :اوعمل عمل قوم لوط فانه يعزرولايحدعندالامام وعندهمايحدوهواحدقولي الشافعي.......ومارواه الشافعي محمول على السياسة وعلى المستحل الاانه يعزرعنده كمافي الهداية ،وفي المنح والصحيح قول الامام وفي الفتح ان يودع في السجن حتى يتوب اويموت (مجمع الانهر:۲/۳۵۰)وقال العلامة ابن عابدين:ولايحدعندالامام الااذاتكررفيقتل على المفتى به ،قال البيرى والظاهر ان يقتل في المرة الثانية لصدق التكرار عليه (ردالمحتار:۳/۱۷۱)

(۱۱)قوله وبهيمة اى لايحدبوطي بهيمة ،يعني که چادڅيل ياغيرله څاروی سره وطی وکړه نوپرده حدنه واجبيږي ولی چې دادزناپه معنی نه ده په دي وجه چې طبع سليم له دي ځخه نفرت کوي ،البته ده ته به تعزيرورکول کيږي ولی چې ده دفعل منکرارتکاب کړی دی.

(۱۲)که چاپه دارالحرب يادباغيانوپه ملک کې زنی وکړه بيادارالاسلام ته راغی نوپرده حدواجب نه دی ولی چې ده په داسې ځای کې زنی کړي ده چيرته چې زموږدامام تصرف نشته لهذاحدنه واجبيږي اودلته له راتلوځخه وروسته موجب حدنشته ولی کوم فعل چې له ابتداء ځخه موجب حدنه وي نوهغه انتهاء هم موجب حدنه دی.

(۱۳)وَبِزِنَا حَرْبِيٍّ بِذِمِّيَّةٍ فِي حَقِّهِ (۱۴)وَبِزِنَا صَبِيٍّ أَوْ مَجْنُونٍ بِمُكَلَّفَةٍ (۱۵)بِخِلافِ عَكْسِهِ (۱۶)وَبِالزِّنَا بِمُسْتَأْجَرَةٍ (۱۷)وَبِإِكْرَاهٍ

**ترجمه**:(اوحدنه جاري کيږي )دحربي په زناکولوله ذميه سره دحربي په حق کې ،اودنابالغ ياليونی په زناکولوله مکلفې سره ،په خلاف ددي په عکس کې ،اوپه کرايه باندي له رواړل شوي سره په زناکولو ،اوپه زورپه زناکولوسره ،

**تشريح** :(۱۳)قوله وبزناحربي الخ اى لايحدبزناحربي بذمية ،يعني که حربی کافرد مستامن په حيثيت سره دارالاسلام ته داخل شوبيا ده له ذميه سره زناوکړه نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپه نرباندي حدنه جاري کيږي حال داچې دامام ابويوسف رحمه الله په نزدمستامن چې ترڅوپوري په دارالاسلام کې اوسيږي ترهغه وخته ده ذمی په شان زموږتول احکام پرخپل ځان لازم کړي دي لهذاذمی په شان به پرده هم حدجاري کيږي ،دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې مستامن دارالاسلام ته دمستقلي اوسيدنې لپاره نه ده راغلی بلکه دتجارت

وغیره کوم ضرورت لپاره دېرته تللو په نیت راغلی دی لهذا دی دذمیانو په شان نه شو او موږ داحکامو التزام ده صرف دومره اندازه کړی دی په څومره اندازه سره چې دده مقصود حاصلیږي او هغه حقوق العباد دي حال داچې حدمحض حق شرع ده له حقوق العباد څخه نه ده ،او داحکم صرف دمستامن په حق کې دی ،باقی له کومې ذمیه سره چې ده زنا کړي ده پر هغې به حد جاري کیږي ولی چې ذمیانو زموږ داحکامو التزام کړی دی.

(۱۴)قوله واو ناصبی الخ ای لایحدالصبی والمجنون بالزنابامراة مکلفة الخ ،یعنی که نابالغ هلک یا مجنون له بالغې ښځې سره زنا وکړه نو په دوئ کې به یوه هم حد واجب نه دی په هلک او مجنون خو حد په نه واجبیدلو دامت اجماع ده زموږ په نزد پر بالغه ښځه هم حد نشته ولی چې زنا دهغه کس فعل دی کوم چې له دي قبیح فعل څخه دځېل ځان په منع کولو مخاطب دی حال داچې ده هلک او مجنون دا فعل په دي صفت سره متصف نه دی لهذا ددوئ فعل موجب حد هم نه دی.

(۱۵)او که ده مذکوره بالاصورت عکس وي یعنی عاقل بالغ کس له نابالغې انجلۍ یا مجنونې سره زنا وکړه نو پر ده حد واجب دی ولی چې له عاقل بالغ کس څخه دصادریدلو په وجه داحقیقة زنا ده انجلۍ او مجنونه تابع ده نو که ددوئ په حق کې دازنانه ده نو له دي څخه دانه لازمیږي چې دنارینه په حق کې دي هم زنانه وي.

(۱۶)قوله وبالزنابالمستاجرة ای لایحدبالزنابامراة التی استاجرهالیزنی بها،یعنی که څوک دزنالپاره کومه ښځه خپل کورته په کرایه راولي اوله هغې سره زنا وکړي نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد پر ده حد نشته .حال داچې دصاحبینو او ائمه ثلاثه په نزد پر ده حد واجب دی ولی چې نه ددوئ په منځ کې ملک شته اونه شبه ملک شته لهذا دمحض زنا کیدلو په وجه سره حد واجب دی .دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادی چې باری تعالی په ﴿فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ کې مهرته اجرت ویلی دی لهذا په دي سره شبه حلت پیدا شوه ،والحدودتندرئ بالشبهات (یعنی حدود دشبه په وجه سره دفع کیږي )،او که یې دخدمت لپاره خپل کورته راوستله اوبیایې له هغې سره زنا وکړه نو بالاتفاق حد پر واجب دی ولی چې دلته کومه شبه نشته.

ف:دصاحبینو قول راجح دی لمافی الدرالمنتقی :(ولایحد)من وطئ من استاجرهالیزنی بهاعندابی حنیفه خلافالهما،فانه یحدعندهمافی المسالتین وعلیه التعویل کمافی فتح القدیر وغیره،وفی الخلاصة فی مسالة المحرم وعلی قولهماالفتوی وفی القهستانی بعدان نقل عن المضمرات تصحیح قوله،قال:وفی موضع آخراذاتزوج بمحرمة یحدعندهماوعلیه الفتوی واما فی مسالة المستاجرة وکذاالمستعارة فجزم القهستانی بوجوب الحدفیهما(الدرالمنتقی:۲/۳۴۹)

(۱۷)قوله وباکراه ای لایجب الحدبالزنابالاکراه ،یعنی که په کوم کس باندي دزنا کولو لپاره زور وکړل شوچې دهغه په نتیجه کې ده زنا وکړه نو پر ده حدنه جاري کیږي دامام ابوحنیفه رحمه الله مذهب په اول کې داوو چې پر مکره حد جاري کیږي ولی چې انتشار آله ددي دلیل دی چې ده په خوښې زنا وکړه مګر بیا امام ابوحنیفه رحمه الله له دي رجوع وکړه او وي فرمایل چې پر ده حد نشته ولی چې انتشار آله کله په اراده سره نه وي بلکه دطبیعت په مقتضی سره وي لکه په خوب کې نو دده له طرف څخه شبه پیدا شوه والحدود تندرئ بالشبهات (یعنی حدود په شبهاتو سره دفع کیږي).

(۱۸)وَبِإِقْرَارٍ إِنْ أَنْكَرَهُ الْآخَرُ (۱۹)وَمَنْ زَنَى بِأَمَةٍ فَقَتَلَهَا لَزِمَهُ الْحَدُّ وَالْقِيمَةُ (۲۰)وَالْخَلِيفَةُ يُؤْخَذُ بِالْقِصَاصِ وَبِالْأَمْوَالِ لَا بِالْحَدِّ

**ترجمه** : او (حدنه جاري کيږي) د زنا په اقرار کولو سره په داسې حال کې چې هغه بل انکار کوي، او چاچې له مينځې سره وطی وکړه بيايې هغه قتل کړه نوپرده حد او قيمت لازم دی، او دخليفه مؤاخذه به کيږي په قصاص او اموالونه په حد.

**تشريح** :(۱۸)قوله وبالاقرار لايجب الحد بالاقرار الحد الزانيين ،يعنی که له زانی اومزنيه څخه يوپه خپلوڅلورو مجلسونوکې څلورځله اقرار وکړچې ماله فلان سره زناوکړه مګرهغه بل له زناڅخه انکارکوي نوپريوه به هم حدنه جاري کيږي ولی چې زنادداړه منځ کې مشترک فعل دی اوپه دواړوپوري قائم دی نوله يوه څخه په انتفاء سره له هغه بل څخه دفعل زناپه صدورکې شبه پيداکيږي لهذاپرمقرهم حدنه جاري کيږي.

(۱۹)که چادکوم بل چاله مينځې سره په دې ډول زناوکړه چې هغه مړه شوه نوپه زانی به حدهم جاري کيږي اوپرده دمينځې قيمت هم واجب دی ولی چې ده دوه جرمه وکړل زنايې وکړه اومينځه يې قتل کړه ونوپرهرجرم به دهغه حکم مرتب کيږي تودادسې شوه لکه چې کوم مسلمان دذمی شراب وڅښې نوپرده حدهم واجب دی اوددمی دشرابوضمان هم واجب دی.

(۲۰)اودمسلمانوداسې خليفه چې له هغه څخه لوړامام نه وي پرهغه له قصاص اوحقوق العباد څخه ماسوا هيڅ حدنشته ولی چې حدود حقوق الله دي اوحدودوقيام په خپله ده همدې خليفه په لاس کې دی نوده لره په خپل ځان حدجاري کول ممکن نه دی ولی چې حدبطورسزاجاري کيږي اوکوم انسان خپل ځان ته سزانه ورکوي په خلاف دقصاص اونوروحقوق العبادوولی چې کوم بنده چې حقداردی هغه به خپل حق وصوکړي خواه که خپله خليفه ده ته دخپل حق دوصول کولوقدرت ورکړي ياصاحب حق دنورومسلمانوپه قوت سره له ده څخه خپل حق وصول کړي.

## بَابُ الشَّهَادَةِ عَلَى الزِّنَا وَالرُّجُوعِ عَنْهَا

داباب پرزنادګواهي ورکولواوله هغې څخه درجوع کولوپه بيان کې دی

په ماقبل کې بيان شوچې حدپه شهادت اواقرارسره ثابتيږي ،په دې باب کې يې هغه اسباب اوعوارض ذکرکړي دي په کوموچې شهادت رديږي ،لکه تقادم ،جهل بالمزنيه وغيره اوداعوارض خلاف الاصل دي په دې وجه ددې تاخيرمناسب دی.

(۱) شَهِدُوا بِحَدٍّ مُتَقَادِمٍ سِوَى حَدِّ الْقَذْفِ لَمْ يُحَدَّ (۲) وَضَمِنَ الْمَالَ (۳) وَلَوْ شَهِدُوا بِزِنًا بِغَائِبَةٍ حُدَّ بِخِلَافِ السَّرِقَةِ (۴) وَإِنْ أَقَرَّ بِالزِّنَا بِمَجْهُولَةٍ حُدَّ (۵) وَإِنْ شَهِدُوا عَلَيْهِ بِذَلِكَ لَا كَمَا لَوْ اخْتَلَفُوا فِي طَوْعِهَا (۶) أَوْ فِي الْبَلَدِ وَلَوْ عَلَى كُلِّ زِنًا أَرْبَعَةٌ (۷) وَلَوْ اخْتَلَفُوا فِي بَيْتٍ وَاحِدٍ حُدَّ الرَّجُلُ وَالْمَرْأَةُ

**ترجمه** ،ګواهي يې ورکړه په کوم پخوانی حدباندې ماسواله حدقذف څخه نوحدنه جاري کيږي ،اودمال ضامن دی ،اوکه ثابت کړګواهانودېوچاله غائبې ښځې سره زناکول نوحدبه جاري کيږي په خلاف دسرقې ،اوکه چااقراروکړله کومې مجهولې ښځې سره دزناکولونوحدبه جاري کيږي ،اوکه ګواهانوددې ګواهي ورکړه نونه جاري کيږي لکه دګواهانواختلاف په خوښه سره په زناکولوکې ،ياپه ښارکې که څه هم پرهره

زناباندي څلورګواهان وي .اوكه ګواهانو په يوه كوټه كې اختلاف وكړنو په نراو ښځې دواړو به حد جاري كيږي.

**تشريح** :(۱)كه ګواهانو دتيري شوي زمانې په كوم پخواني حدباندي ګواهي وركړه حال دا چې دوئ لره له ګواهي وركولو څخه هيڅ مانع نه وومثلاله امام څخه ليري والي يامرض يادلاري خوف هيڅ نه وونو ددوئ ګواهي به نه قبليږي ولې چې دګواهې تاخيربه يادستر پوشې په نيت وي يابه له دي څخه علاوه دتساهل پر بناء وي په اول صورت كې اوس دګواهې وركولوسبب ماسواله عداوت څخه بل څه شئ كيداى شې لهذادتهمت په وجه ددوئ ګواهي معتبره نه ده اوپه دوهم صورت كې دتساهل په وجه داكس فاسق دى لهذاده ګواهي معتبره نه ده .البته كه چاپه پخواني حدقذف ګواهي وركړه چې ده په فلانى دزناپه دروا غوتهمت لګولى دى نود اباطله نه ده ولې چې حد قذف له حقوق العباد څخه دى او دوخت په تيريدلو سره حقوق العبادنه باطليږي.

(۲)كه ګواهانو دتيرشوي زمانې دغلاپه حدګواهي وركړه نوځرنګه چې داګواهي معتبره نه ده نوپرده به حدنه جاري كيږي لماقلنا،مګرله غله څخه به دمسروق مال تاوان اخيستل كيږي ولې چې دمال ضمان دحقوق العبادله قبيلې څخه دى او دوخت په تيريدلوسره حقوق العبادنه باطليږي.

(۳)كه ګواهانو دكوم كس له كومې اجنبيه ښځې سره زناثابته كړه كومه چې دقاضي له مجلس څخه غائبه ده نوپه زاني به حدجاري كيږي ولې چې دازناثابت بالحجة ده لهذاپرزانى به حدجاري كيږي ،اوكه ګواهانوكه كوم كس داثابته كړه چې ده دفلان غائب مال غلاكړى دى نوپردي غله به حدنه جاري كيږي يعنى دده لاس به نه پري كيږي ولې چې دحدسرقه لپاره دمدعى له طرفه دعوى شرط ده دلته مدعى غائب دى نودعوى نشته لهذاپرده به حدنه جاري كيږي.

(۴)كه چااقراروكړچې ماله يوي داسې ښځې سره زناكړي ده كومه چې زه اوس نه پيژنم نوپرده به حدجاري كيږي ځكه چې ددي ښځې نه پيژندنه ددي خبري دليل دى چې ده له اجنبيه ښځې سره صحبت كړى دى ولې كه يې له خپلې ښځې يامينځې سره صحبت كړى واى نوخامخابه يې پيژندلې وه.

(۵)قوله ولو شهدوابهذالك لاى لوشهدالشهود على رجل بالله زنا بامراة لايعرفها لايحد المشهود عليه .يعنى كه ګواهانوپه كوم كس داسې ګواهي وركړه چې ده له يوي داسې ښځې سره زناوكړه كومه چې موږنه پيژنو نوپرده به حدنه جاري كيږي ولې كيداى شې چې هغه ښځه دده ښځه به يې يامينځه وي بلكه ظاهر همداده ولې چې مسلمان حرام كاري نه كوي ،اوداداسې ده لكه چې ګواه په خپل منځ كې اختلاف سره وكړي دوه خوداوايې چې ده له فلانى ښځې سره جبرازناوكړه اودوه نوربياداوايې چې هغه ښځه له ده سره په زناكولوراضي وه ،نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپردواړوحدنه جاري كيږي ولې چې دښځې په طرف كې مشهودبه مختلفه شوه له كوم څخه دنارينه په جانب كې شبه پيداشوولې فعل يودى په دواړو پوري قائم دى اوكوم فعل چې په دواړوپوري قائم وي هغه په دوومتضادوصفتونو نه شې متصف كيداى لهذا له دواړوڅخه به يوه ته هم حدنه

کول کیږي .دصاحبینوپه نزدپرنارینه حدجاري کیږي ولی چې دنارینه په خوښې سره په زناکولودګواهانواتفاق دی.

**ف**:دامام صاحب قول راجح دی لمافی الدر المختار: لایحد لاحتمال الهاامرأته اوامته کاختلافهم فی طوعها(الدر المختار علی هامش ردالمحتار: ۱۲۳/۳).قال الشیخ عبدالحکیم الشهید: وهوقول الائمة الثلاثة وبه جزم فی الدر المختار والشامی والیه یظهر میل اکثر المشائخ والمحققین(هامش الهدایة: ۲/۵۰۰)

(۶)قوله اوفی البلدای کاختلافهم فی البلد،یعنی که ګواهانوپه ښارکې اختلاف وکړنوددي دوه صورتونه دي یوداچې مثلاًدووګواهانووویل چې ده په کوفه کې له فلانی ښځې سره زناوکړه دوونوررو وویل چې ده په بصره کې له دي ښځې سره زناوکړه په دي شرط چې دواړه قسمه ګواهان وخت یویادکړي نوله ښځې اونارینه څخه به یوه ته هم حدنه ورکول کیږي ولی چې له دواړوڅخه یوفریق خامخاکاذب دی نودګواهانودنصاب دنه پوره کیدلوپه وجه سره حدنه جاري کیږي ،دوهم صورت داد ی چې څلورګواهان ګواهي ورکړي چې زنادجمعې په ورځ په کوفه کې سهارپه نهه بجې وشوه اونوروڅلورو ګواهانوګواهي ورکړه چې دجمعې په ورځ په په نهه بجې په بصره کې وشوه نوپه نارینه اوښځې یوه به هم حدنه جاري کیږي ولی چې موږیقین لروچې له دواړوشهادتوڅخه یوخامخادرواغ ده ولی چې دیوه کس په یوه وخت کې په دوو متباعدومکانوکې موجودیدل محال دی نوهره یوه ګواهي متهم بالکذب ده په دي وجه دادواړه ګواهیانې مردودي دي.

(۷)که ګواهانوپه دي دول اختلاف وکړچې دووویل چې ده له فلانی ښځې سره دکوټې په فلانی کونج کې زناوکړه اودوونوررووویل چې په هغه بل کونج کې یې زناوکړه نوپردواړوبه حدجاري کیږي ولی چې ددواړوفریقوربنتیاوالی ممکن دی په دي وجه چې کیدای شي چې کوټه کوچنۍ وي اوداضطراب په وجه ابتداء په یوه کونج کې شوي وي اوانتهاء په هغه بل کونج کې ،لهذادګواهانو دنصاب دپوره والي په وجه سره به حدجاري کیږي.

(۸)وَلَوْشَهِدُوا عَلٰی زِنَا امْرَأَةٍ وَهِيَ بِكْرٌ(۹)اَوْ الشُّهُودُ فَسَقَةٌ(۱۰)اَوْشَهِدُوا عَلٰی شَهَادَةِ اَرْبَعَةٍ وَاِنْ شَهِدَ الْاُصُوْلُ اَيْضًا لَمْ يُحَدَّ اَحَدٌ(۱۱)وَلَوْ كَانُوا عُمْيَانًا اَوْ مَحْدُوْدِيْنَ اَوْ ثَلَاثَةً حُدَّ الشُّهُوْدُ لَا الْمَشْهُوْدُ عَلَيْهِمَا

**ترجمه**:که ګواهانودکومې ښځې پرزناګواهي ورکړه اوحال داچې هغه باکره ده ،یاګواهان فاسق دي ،یایې دڅلوررونوروګواهانوپه ګواهي ګواهي ورکړه که څه هم اصل ګواهاه هم ګواهي ورکړي نوپرهیچابه حدنه جاري کیږي ،اوکه ګواهان رانده یامحدودفی القذف وي یادري وي نوپرګواهانوبه حدجاري کیږي نه پرمشهودعلیه باندي.

**تشریح** :(۸)که څلوروګواهانوپرکومې ښځې دزناګواهي ورکړه حال داچې هغه باکره ده یعنی نورو ښځوکتله اووي ویل چې داخوباکره ده نوپردي به حدنه جاري کیږي ولی دښځوقول که څه هم په وجوب حدکې حجت نه دی مګرپه اسقاط حدکې حجت دی لهذاله نارینه اوښځې دواړوڅخه حدساقط دی. اوپرګواهانوبه حدقذف هم جاري کیږي ولی هغوئ دشهادت په لفظ سره ګواهي ورکړي ده اودګواهانو عددهم پوره دی لهذپردوئ حدقذف نه جاري کیږي.

(۹)قوله اوالشهود فسقة اى لوشهداربعة بالزنا وهم فساق لم يحداحد،يعنى كه څلورو گواهانو پر كوم بنځه دزناگواهي وركړه حال دا چې گواهان فاسقان دي نو هم به پر ښځه حدنه جاري كيږي ولى چې دفساقو په گواهي سره زنانه ثابتيږي، او پر گواهانو حدقذف هم نشته ولى چې گواهان دتحمل شهادت او اداء شهادت اهل دي كه څه هم په اداء شهادت كې دتهمت كذب په وجه سره قصوردى.

(۱۰)صورت مسئله دادى چې دڅا پرزنا څلور گواهان ووهغوئ پرخپله گواهي نور څلور گواهان جوړ كړل يا دي څلورو گواهانو دخپل اصل گواهانو په گواهي پردي كس دزنا كولو گواهي وركړه نو پردي حدنه جاري كيږي ولى چې په دي كې داشبه ده چې داصل گواهانو گواهي نه ده معلومه چې په كوم عبارت سره وه شايدهغه دردولو قابل وي ،اوكه دهغه صحت تسليم شي نو بيادااحتمال دى چې دانورو څلورو گواهانوزيادت ياكمبوت كړى وي نو په دي پرشبه شبه ده لهذاداگواهي مردوده ده بياكه اصل گواهان راغلواوگواهي يې وركړه نوهغه به هم رديږي ولى چې له دي څخه وړاندي ددوئ گواهي په يو قسم ردكړل شوه په دي دول چې دهمدي واقعه په باره كې ددوئ دفروعو گواهي ردشوه حال داچې هغوئ ددوئ په حكم گواه جوړشووي وو ،اوپه گواهانو حدقذف په دي وجه نه جاري كيږي چې ددوئ عددپوره دى

(۱۱)كه څلور گواهانو پرچادزناگواهي وركړه حال داچې هغه گواهان ړانده دي يا داسې دي چې كوم وخت پريو چا په درواغو دتهمت لگولو په وجه پردوئ حدقذف جاري شوى دى ياگواهان څلورنه بلكه دري دي نو پرچاچې داكسان گواهي وركوي پرهغه حدنه جاري كيږي ولى چې ړانده او محدودفى القذف په گواهي سره مال هم نه ثابتيږي كوم چې دشبه باوجودهم ثابتيږي نوحدبه څرنگه پري ثابت شي كوم چې په شبهاتوسره ساقطيږي ،نوكله چې ددي گواهانو په گواهي سره زناثابته نه شوه نوگواهانوته به حدقذف روكول كيږي ولى چې ددوئ گواهي اوس پرپاك لمن باندي تهمت شمارل كيږي او پرپاك لمن په تهمت لگونكي حدقذف جاري كيږي.

(۱۲)وَلَوْ حُدَّ فَوُجِدَ أَحَدُهُمْ عَبْدًا أَوْ مَحْدُودًا حُدُّوا (۱۳)وَأَرْشُ ضَرْبِهِ هَدَرٌ (۱۴)وَإِنْ رُجِمَ فَدِيَتُهُ عَلَى بَيْتِ الْمَالِ (۱۵)فَلَوْ رَجَعَ أَحَدُ الْأَرْبَعَةِ بَعْدَ الرَّجْمِ حُدَّ وَغَرِمَ رُبُعَ الدِّيَةِ (۱۶)وَقَبْلَهُ حُدُّوا وَلَا رَجْمَ (۱۷)وَلَوْ رَجَعَ أَحَدُ الْخَمْسَةِ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ (۱۸)فَإِنْ رَجَعَ آخَرُ حُدَّا وَغَرِمَا رُبُعَ الدِّيَةِ

**ترجمه**:كه حدجاري كړل شو بياله گواهانو څخه كوم يوغلام يامحدودفى القذف وموندل شونو پرټولو په حدجاري كيږي، او دحد دضرب تاوان معاف دى ،اوكه رجم كړاى شونودهغه ديت پربيت المال دى ،او كه رجوع وكړه له څلورو گواهانو څخه يوه له رجم څخه وروسته نو پرده به حدجاري كيږي او تاوان به وركوي ربع ديت ،اوكه يې له رجم څخه وړاندي رجوع وكړه نو پرټولو به حدجاري كيږي اورجم نه ثابتيږي،اوكه رجوع وكړه له پنځو څخه يوه نو پرده هيڅ واجب نه دي ،بياكه يوه بل رجوع وكړه نو پردواړو به حدجاري كيږيا ودواړه به دربع ديت تاوان وركوي.

**تشريح**:(۱۲)كه څلورو گواهانو پريو چادزناگواهي وركړه قاضى ددوئ په گواهي پرمشهودعليه حدجاري كړبياله گواهانو څخه يوغلام ثابت شو يامحدودفى القذف ثابت شونو اوس پر گواهانو حدقذف جاري كيږي

ولی چې دغلام او محذودفی القذف گواهي معتبره نه ده باقی دري پاتې شونود گواهانودنصاب دنه پوره کيدلوپه وجه سره داخلک تهمت لگونکې شمارل کيږي لهذاپردوئ به حد قذف جاري کيږي .

(۱۳)په مذکوره بالاصورت کې که مشهودعليه پرڈرووهل شوچې په هغه سره دی زخمې شونودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدددي زخم (که حد دډروو هلوو )پرهيچاتاوان نشته ولی پرگواهانو خوله په دي وجه تاوان نشته چې ددوئ په گواهي سره خوصرف ايذاء ورکونکی ضرب ثابت شوی دی نه زخمې کونکی ،زخم خوددُرووهونکې دعدم تجربې په وجه راغی قصورددُرووهونکې دی لهذاپر گواهانوضمان نشته ،مگرپرجلاد هم تاوان واجب نه دی ولی چې پرجلادپه تاوان واجبولوکې دانقصان راځې چې خلک به له دُرووهلوڅخه انکاروکړي .دصاحبينوپه نزددگواهانودرجوع په صورت کې ددي تاوان پرگواهانودی اوکه گواهانورجوع ونه کړه نوتاوان يې پربيت المال دی ولی چې دگواهانوپه گواهي سره ضرب ثابتيږي بيادوهلوپروخت له زخم څخه ځان ساتل ممکن نه دی لهذاداضرب زخمې کونکی ضرب ته هم شامل دی نوزخمې کيدل ياله زخم څخه مړکيدل ذهمدوئ دگواهي طرف ته منسوب کيږي لهذاله گواهي څخه درجوع کولوپه وخت گواه ضامن دي اوکه گواه له گواهي څخه رجوع ونه کړه نوبياتاوان پربيت المال په دي وجه واجب دی چې ددُري وهونکې فعل دقاضی طرف ته منتقل کيږي اودقاضی فعل دټولو مسلمانانولپاره دی نودهغه تاوان به هم دمسلمانانوپه مال يعنی بيت المال کې واجب وي .

ف:دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لماقال ابراهيم ابن محمدالحلبی :وله ان الفعل الجارح لاينتقل الی القاضی لانه لم يامربه فيقصر علی الجلادالاأنه لايجب عليه الضمان فی الصحيح کيلايمتنع الناس عن الاقامة مخافة الغرامة (مجمع الانهر: ۳۵۶/۲۹)وقال الشيخ عبدالحکيم الشهيد:وبقوله قالت الائمة الثلاثة وبه جزم اکثر المحققين اخذبه فی المحيط وفتح القدير (هامش الهداية: ۵۰۲/۲)

(۱۴)اوکه په مذکوره بالاصورت کې مشهودعليه په رجم کولوسره مړکړای شونودده ديت بالاتفاق پربيت المال دی ولی چې داکس خطاء دقاضی په قضاء رجم شوی دی اودقاضی په خطاء سره چې کوم نقصان راشي هغه پربيت المال وي ولی چې دقاضی فعل دټولومسلمانانولپاره دی نوددي تاوان هم دټولومسلمانانوپه مال يعنی بيت المال کې واجب دی .

(۱۵)که څلوروگواهانوپه يومحصن کس دزناگواهي ورکړه قاضی هغه ددوئ دگواهي په مطابق رجم کړاوس په دي څلوروکې يوه له گواهي څخه رجوع وکړه نوپررجوع کونکی به حد قذف جاري کيږي ولی چې دده شهادت اوس تهمت شو ، اودربع ديت ضامن دی ولی چې نفس انسان دده په شهادت سره ضائع شواودده شهادت يوه څلورمه ده لهذا بقدر شهادت به پرده ديت وي .

(۱۶)قوله وقبله حدوای لورجع احدمن الشهودقبل الرجم بعدالقضاء حدوا کلهم ،يعنی که دقاضی له قضاء څخه وروسته اودحدله جاري کولوڅخه وړاندي له گواهانوڅخه يوه گواه له گواهي څخه رجوع وکړه نود شيخينوپه نزدپرټولو گواهانو حدقذف جاري کيږي ولی چې په باب الحدودکې حدجاري کول ملحق بالقضاء دی نوله حدجاري کولوڅخه وړاندي دکوم گواه رجوع کول داسې دی لکه دقاضی له قضاءڅخه وړاندي رجوع کول اودقاضی له قضاء څخه وړاندي په رجوع کولوسره پرټولوحدجاري کيږي لهذاپه دي صورت کې به هم پرټولوحدجاري کيږي ، اوپرمشهودعليه رجم نشته ولی چې دهغه زناکول ثابت نه دي .

(۱۷)که پر کوم کس پنځو گواهانو د زنا گواهي ورکړي وي بیا له هغو پنځو څخه یوه له گواهي څخه رجوع وکړه نو پر رجوع کونکي هیڅ واجب نه دي ولی کوم گواه چي باقي دي په هغو سره نصاب پوره دی او معتبر د هغوئ بقاء ده د رجوع کونکي رجوع معتبره نه ده.

(۱۸)او که له پنځو څخه یوه بل هم رجوع وکړه نو په رجوع کونکو دواړه به حد قذف جاري کیږي او دا دواړه به د ربع دیت ضامن وي ولی چي د دوئ شهادت او س تهمت شوا و د ربع دیت ضامن به په دي وجه وي چي نفس انساني د دوئ په شهادت سره ضائع شوا و د دوئ شهادت یوه ربع ده لهذا بقدر شهادت به پر دوئ دیت وي.

(۱۹)وَضَمِنَ الْمُزَكُّونَ دِيَةَ الْمَرْجُومِ إِنْ ظَهَرُوا عَبِيدًا (۲۰) كَمَا لَوْ قُتِلَ مَنْ أُمِرَ بِرَجْمِهِ فَظَهَرُوا كَذَٰلِكَ (۲۱) وَإِنْ رُجِمَ فَوُجِدُوا عَبِيدًا فَدِيَتُهُ فِي بَيْتِ الْمَالِ

**ترجمه**: او ضامن دي تزکیه کونکي د رجم شوي د دیت که هغوئ غلام ثابت شول، لکه چي څوک قتل کړي هغه چي د هغه د رجم حکم شوی وي بیا هغه په دي ډول ظاهر شي (غلام ثابت شي)، او که رجم کړل شو بیا گواه غلام و موندل شول نو د هغه دیت به پر بیت المال وي.

**تشریح**: (۱۹)که څلورو گواهانو پر یو چا د زنا گواهي ورکړه او د گواهانو له تزکیه کونکو څخه چي کله د گواهانو د عدالت په باره کي پوښتنه وشوه هغوئ د گواهانو عدالت بیان کړ نو مشهود علیه رجم کړل شو بیا گواه غلام ثابت شول نو د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د رجم شوی دیت پر هغو واجب دی کوم چي د گواهانو عدالت بیان کړی دی په دي شرط چي تزکیه کونکي دوئ احرار و شیي ولی چي گواهي هغه وخت حجت دی چي تزکیه کونکي د گواهانو عدالت بیان کړي نو عدالت بیا نول گویا علة العلة دی نو حکم هم د هغه طرف ته منسوب کیږي.

(۲۰)پورته ذکر شوی صورت داسي دی لکه چي د کوم کس په باره کي څلور گواهان گواهي ورکړي قاضي د هغه د رجم حکم وکړي او س یو کس دی قتل کړله دي څخه وروسته گواه غلام ثابت شول نو د قیاس تقاضا داده چي پر ده قصاص واجب شي ولی چي ده یو معصوم انسان بلا حقه قتل کړ مگر استحسانا پر ده دیت واجبیږي وجه د استحسان داده چي د ده د قتل پروخت د قاضي قضاء صحیح ده لهذا په دي سره شبه پیدا شوه نو پر قاتل قصاص واجب نه دی.

(۲۱)او که په مذکوره صورت کي د قاضي د رجم د حکم کولو څخه وروسته چا مشهود علیه قتل نه کړ بلکه هغه رجم کړای شو بیا گواه غلام ثابت شول نو د هغه دیت پر بیت المال واجب دی ولی چي رجم کونکو خو د امام اطاعت کړی دی لهذا د دوئ فعل د امام طرف ته منتقل کیږي او که په خپله امام رجم کوی نو دیت پر بیت المال واجبیدی هم دا شان د لته هم دی.

(۲۲)وَلَوْ قَالَ شُهُودُ الزِّنَا تَعَمَّدْنَا النَّظَرَ قُبِلَتْ شَهَادَتُهُمْ (۲۳) وَلَوْ أَنْكَرَ الْإِحْصَانَ فَشَهِدَ عَلَيْهِ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ أَوْ وَلَدَتْ زَوْجَتُهُ مِنْهُ رُجِمَ

**ترجمه**: او که د زنا گواهانو ووېل چي موږ د کتلو قصد کړی وو نو د دوئ گواهي به قبلیږي، او که زاني د محصن والی انکار وکړي بیا یو کس او دوه ښځي د هغه د محصن والی گواهي ورکړي یا د هغه د هغه د ښځي له ده څخه ماشوم وزیږي نو رجم کیږي به.

**تشريح**:(۲۲)كه گواهانو دچادزنا په باره كې گواهي وركړه اوداېې هم وويل چې موږعمداددوئ شرمگاه ته وكتل نوهم به ددوئ گواهي قبليږي داخلك عمدادغيرشرمگاه ته دكتلوپه وجه فاسق نه شمارل كيږي ولې چې دتحمل شهادت لپاره دهغوئ شرمگاه ته كتل مباح دي په دي وجه چې دضرورت پروخت دغيرشرمگاه ته كتل جائزدي لكه چې دطبيب لپاره دعلاج پروخت بناء برضرورت مباح دي ، همداراز كه دداسې كسانوشهادت قبول نه كړای شي نودشهادت علي الزنا دروازه به بنده شي .

(۲۳)كه څلوروگواهانوپركوم كس دزناگواهي وركړه مگرده له خپل محصن والي څخه انكاروكړمثلاً وي ويل چې ماپر خپله ښځه دخول نه دی كړی بياپرده يوه نراودووښځوددهٔ احصان گواهي وركړه ياددهٔ دښځې له دهٔ څخه اولادپيدا شو نوپه دي دواړوصورتونوكې به دی رجم كيږي ولې چې ثابته شوه چې ددهٔ له محصن والي څخه انكاركول صحيح نه دي لهذادااحصان دثابتيدلوپه وجه به دی رجم كيږي .

## بَابُ حَدِّ الشُّرْبِ

داباب دشراب څښلو دحد په بيان كې دی

له حدالشرب څخه مراد دحرام نشه پيداكونكې شئ دڅښلو حد دی،څرنگه چې زنا دحرام شي له څښلو څخه ډيره قبيحه ده اودهغې سزا هم دحرام شئ دڅښلوله سزا څخه سخته ده ،او دشدت شهوت په وخت كې دزنا طرفته ميلان كول اوپه زناكې واقع كيدل هم په نسبت دشرب محرم ډيردي ،په دي وجه يې له حدشرب څخه وړاندي حدزناذكركړ.

(۱)من شَرِبَ خمرًا فأُخِذَ وريحُها موجودٌ (۲) أو كان سكرانَ ولو بنبيذٍ وشهِدَ رجلانِ أو أقرَّ مرَّةً حُدَّ (۳) إن عُلِمَ شربُهُ طوعًا (۴) وصحَا (۵) فإن أقرَّ أو شهِدَا بعدَ مضيِّ ريحِها لا لبُعدِ المسافةِ

**ترجمه**:چاچې شراب وڅښل بياونيول شو په داسي حال كې چې دشرابو بوئ موجود وو ،ياهغه په نشه كې مست وو كه څه هم په نبيذو باندي وي او دوو نارينه و شاهدي وركړه ياده په خپله يوځل اقرار وكړنو حدوركول كيږي، كه ددهٔ په خوښی (رضا)سره څښل معلوم شي ،اودبيداری په حال كې وي،اوكه يې اقرار وكړياېې شاهدي وركړه وروسته له ختمېدلو دبوئ دبعد مسافت له كبله نه ،(نو حد نه وركول كيږي).

**تشريح**: (۱)كه يوچا په خپله خوښه شراب (شراب دانگوروشيره ده كله چې جوش وخوري اوتيزه شي اوځگونه وكړي) وڅښل كه څه هم يوه قطره وي بياونيول شو په داسي حال كې چې دشرابو بوئ لاتراوسه موجود وو او دوو خلگو پرده باندي دشراب څښلو شاهدي وركړه ياده يوځل دشراب څښلو اقراروكړ نوده ته حدوركول كيږي،ځكه څښل دشرابو ثابت شول اومانه هم زياته نه ده تېره شوې، دشرابودحد پنځه شرطونه دي اول شرط دادی چې دشرابو بوئ به موجود وي په دې شرط چې ده به څښلي وي، دوهم شرط دادی چې دشراب څښلوشاهدي دوه نارينه وركړي دښځو شاهدي معتبره نه ده .

(۲) دريم شرط دادی چې كه كوم شخص نشه راوستونكې شی څښلی وي نوله هغه شئ څخه به په نشه كې مست وي كه څه هم له نبيذ (يعني دانگورو ،خورما ،وغيره تازه عرق (اوبه)څخه نشه وي، دنشه

کېدلو قيديې په دي وجه معتبرکړ چې که دديې په څښلو سره نشه نه شو نوحد نه وربانديې واجيبږي،په خلاف دشرابو چې په هغوکې :دنشه کېدلو قيد معتبرنه دی بلکه دشرابو په لږڅښلو بانديې هم حدواجيبږي،دشرابو څښل لږاوډېر سره برابرديې، قوله او اقرمرة حد داعبارت داولنۍ مسئلې برخه ده،(۳) څلورم شرط دادی چې شراب به ده په خپل اختيار څښلي وي ،نوپه نشه کې پرمست شخص به صرف په نشه کې دمست کېدو له کبله حدنه جاري کېږي ،ترڅوچې دامعلوم نه شي چې ده په خوشۍ سره څښلي دي اوکه په اکراه سره ،ځکه کېدلای شي چې ده په جبر(زور) سره شراب څښلي وي،اوچاچې په جبر(زور) شراب څښلي وي پرهغه بانديې حد نشته .

(۴) قوله وصحا ای افاق من سکره ، يعني دحد پنځم شرط دادی چې شراب څښونکی به دنشې په حال کې مست نه وي، ولی چې په نشه کې مست شخص ته حد نه ورکول کېږي،ترهغه وخته پوري چې مستي يې زائله نه شي چې دحد ددرد له پيدا کېدلو څخه دحد مقصود(يعني په اينده کې له شراب خورۍ څخه منع شي )حاصل شي،حال دا چې دسختي مستۍ په حال کې د درد احساس نه کېږي له کوم څخه چې دحد مقصود فوت کېږي .

(۵) که شراب څښونکي دشرابو دبد بويې له ختمېدلو څخه وروسته اقرار وکړ یاشاهدانو شاهدي اداکړه نودشيخينو رحمهما الله په نزد حد نشته ولی چې دبوی دختمېدلوپه وجه سره دا شرب قديم دی نودزنا قديم په شان په دي کې هم حدنشته، مګرشرط دادی چې دبوی ختمېدل به دبعدمسافت په وجه سره نه وي،ولی چې که دبعدمسافت په وجه سره بوی زائل شوی وو نوهغه دحد مانع نه دی،دامام محمد رحمه الله په نزد زوال دبوئ هروخت مانع دحد نه دی ،ځکه شراب خور دشراب څښلو اقرارکړی دی اودزمانې په تېرېدلو بانديې اقرارنه باطلېږي.

ف: دامام محمد رحمه الله قول راجح دی،لمافی الشامية: وكذايمنع الاقرار عندهما لاعندمحمد ورجح في غاية البيان قوله وفي الفتح انه الصحيح قال في البحر والحاصل ان المذهب قولهما الا ان قول محمد ارجح من جهة المعنى (ردالمحتار: ۳/۱۸۰)وقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد: والراجح انما هو قول محمد وعليه الفتوى(هامش الهداية: ۲/۵۰۵)

(۶) اَوْ وُجِدَ مِنهُ رَائِحَةُ الْخَمْرِ اَوْ تَقَيَّأَهَا(۷) اَوْ رَجَعَ عَمَّا اَقَرَّ اَوْ اَقَرَّ سَكْرَانَ بِاَنْ زَالَ عَقْلُهُ لَا (۸) وَحَدُّ السُّكْرِ وَالْخَمْرِ وَلَوْ شَرِبَ قَطْرَةً ثَمَانُوْنَ سَوْطًا وَلِلْعَبْدِ نِصْفُهُ وَفُرِّقَ عَلٰى بَدَنِهِ كَحَدِّ الزِّنَا

**ترجمه**: یاپیدا شو له ده څخه بوئ دشرابو یاده شراب قی کړل،یاده له اقرارڅخه رجوع وکړه یایې په حال دنشې کې اقرار وکړپه دي شان چې دده عقل زائل شوی وو ،نوحدنه ورکول کېږي ،اودمستۍ اودشراب څښلو حد که څه هم يوه قطره وي اتيا(۸۰) دورې دی اودغلام لپاره ددي نيمی دی، اوجلا جلا به وهل کېږي دده پر بدن بانديې لکه حد دزنا.

**تشريح**:(۶) قوله او وجد منه رائحة الخمر ای ان وجد من الماخوذ رائحة الخمر لايحد.يعني که کوم شخص په داسې حال کې ونيول شو چې دده له خولې څخه نه دشرابو بوئ راتلی اونه شاهدانو دشراب څښلو شاهدي ورکړې وه اونه په خپله ده اقرار کړی وو، همداشان که چابلا شهادته اوبلااقرار شراب قی کړل نوپه دي دواړو صورتونو کې ده ته حد نه ورکول کېږي ، ځکه په بوئ کې احتمال دی چې دابه له شرابو پرته دبل شي وي چې

په هغه کې حد نه شته،همداشان په څښلوکې هم احتمال کیدلای شي چې په سبب داکراه یاپه حال اضطرارکې څښلي وي چې په هغه کې حد نشته ، بس دشک له کبله حد نه ورکول کیږي .

(۷) همداشان که کوم شخص دشراب څښلو اقرار وکړ یاپه نشه کې مست شخص پرخپل ځان اقرار وکړ چې زماعقل دفلانی نشې له کبله زائل شوی دی بیایې له دغه اقرارڅخه رجوع وکړه نوپه دي دواړو صورتونو کې ده ته حد نه ورکول کیږي،ځکه دا خوصرف د الله تعالی ﷻ حق دی په هغه کې رجوع کول مقبول دی ،کمامر فی حدالزنی!.

(۸) دشراب څښلو اودنشې حد دازاد انسان لپاره اتیا (۸۰) دورې دي کې څه هم شراب یوه قطره څښلي وي،ځکه پردغه باندي دصحابه کرام ﷺ اجماع ده ،که شراب خور غلام وو نودده حد څلوېښت (۴۰) دورې دي ،ځکه مریی توب (رقیت) دنعمت او دعذاب تنصیف کوي،کمامر،اودا دورې به دحد زناپه شان پربدن باندي جلا جلا ورکوي ،ځکه پریوه ځای باندي داتیا (۸۰) درو له وهلو دهلاکت خطره ده ،کمامرفی حدالزنی!.

## بابُ حَدِّ القَذْفِ

داباب دتهمت زنا دحدپه بیان کې دی

قذف په لغت کې ده‌برې ویشتلوته،اوپه شریعت کې پرچا دزناتهمت لګولوته ویل کیږي،اوقذف بالاجماع ګناه کبیره ده، حدقذف یې ترله حددشرب څخه وروسته ذکرکړ وجه یې داده چې په حد دشرابو کې دشارب جرم یقیني دی حال داچې په حدقذف کې دقاذف جرم یقیني نه دی ولې چې دقاذف دریښتیا ویلو احتمال شته،ددواړو په منځ کې مناسبت ثبوت دحد اود دوه‌په مقدار کې برابري ده.

(۱)هو کَحَدِّ الشُّرْبِ کَمِّيَّةً وَثُبُوتًا فَلَوْ قَذَفَ مُحْصَنًا أَوْ مُحْصَنَةً بِزِنًا حُدَّ بِطَلَبِهِ مُفَرَّقًا (۲) وَلَا يُنْزَعُ عَنْهُ غَيْرُ الْفَرْوِ وَالْحَشْوِ (۳) وَإِحْصَانُهُ بِكَوْنِهِ مُكَلَّفًا حُرًّا مُسْلِمًا عَفِيفًا عَنْ زِنًا

**ترجمة:** هغه دشراب څښلو دحد په شان دی په مقدار کې اوپه ثبوت کې ،بیاکه یې تهمت ولګوی پر محصن یاپرمحصنه باندي دزنانو حدبه ورکول کیږي دهغه په طلب کولو باندي ،جلاجلا اونه به ایستل کیږي له هغه څخه دپوستین اوپونبه لرونکي څخه علاوه ، اودده احصان دده عاقل، اوبالغ، اوازاد، اومسلمان، اوله زناڅخه پاک لمنی والی دی.

**تشریح:**(۱) یعني دقذف حد دشرابودحد په شان دی ،په کمیت اوثبوت کې ،له کمیت څخه مراددادی لکه څرنګه چې په حد دشرابوکې د ازاد انسان لپاره اتیا (۸۰) دورې اودغلام لپاره څلوېښت دورې دي،همداشان په حدقذف کې هم دی چې حاکم دي هغه اتیا (۸۰) دورې ووهي ، لقوله تعالی ﴿والذین یرمون المحصنات ......... فاجلدوهم ثمانین جلدة﴾ (یعني کوم خلک چې پرمحصنه ښځه باندي تهمت لګوي یاهغوئ پرخپل قول باندي څلور شاهدان نه راولي نوهغه اتیا (۸۰) دورې ووهئ) په آیت کریمة کې له، یرمون، څخه دزنا تهمت مراد دی ، په دې شرط چې مقذوف دحد قذف مطالبه وکړي ، دمقذوف مطالبه په دي وجه دحد لپاره قیدشوه چې پرقاذف باندي حدجاري کول له خپل ځان څخه دعار(پېغور) دفع کولو لپاره دمقذوف حق دی،اوکه تهمت لګونکی غلام وو نو هغه به څلوېښت (۴۰) دورې وهل کیږي ، ځکه مرییتوب دنعمت

اوعقوبت تنصیف کوي ،اوله ثبوت څخه مراد دادی چې لکه څرنګه چې دشرابو حد د دوو(۲) خلګو په شاهدي یاخپله دهغه په یوځل اقرارباندي ثابتیږي همدا شان دقذف حد هم په هغو دوو امورو باندي ثابتیږي دښځو شاهدي ته اعتبار نه ورکول کیږي.

(۲) قوله متفرقا ای ضربامتفرقا علی اعضاء القاذف ،یعني دوري به دقاذف پرمختلفو اعضاوو باندي وهل کیږي، کماسبق،اوله ده څخه به جامي نه ایستلي کیږي ،ولی چې داپه حدودوکې سپک حددی په دي وجه چې ددي سبب قطعي نه دی ،ځکه دقاذف دربښتین والی احتمال شته ، البته پوستین اوله پنبوو څخه ډکې جامې به تري ایستل کیږي ، ولی چې دا شیان ددرد له رسیدلو څخه مانع دي.

(۳) دمقذوف دمحصن کیدلو پنځه شرطونه دي ، ازاد، عاقل، بالغ ، مسلمان،اوله زنا څخه به پاک وي دازادقیدیې په دي وجه معتبرکړ چې محصن ته ازاد ویل کیږي کمافی قوله تعالی ﴿فعلیهن نصف ماعلی المحصنات﴾ (یعني پردوئ باندي دهغې سزا نصف دی کومه چې پرازادو ښځو باندي وي ) دعقل اوبلوغ قیدیې په دي وجه سره معتبرکړل چې په کوچني اولیوني پوري عار(پیغور) نه ملحق کیږي ولی چې له دوئ څخه دزنا فعل نشي متحقق کیدلای ،اودمسلمان والی قیدپه دي وجه معتبرکړ چې پیغمبر ﷺ فرمایلي دي (من اشرک بالله فلیس بمحصن) (چاچې له الله ﷻ سره شرک وکړهغه محصن نه دی) اوله زناڅخه دپاک لمن والی قیدیې په دي وجه معتبرکړ ولی چې کوم څوک چې پاک دامن نه وي هغه ته په دي خبرو باندي عار(پیغور) نه دریږي اودده په حق کې قاذف ربښتنی هم دی.

(۴)فلو قال لغيره لست لابيك او لست بابن فلان في غضب حد وفي غيره لا (۵) كنفيه عن جده (۶) وقوله لعربي يانبطي (۷) وياابن ماء السماء (۸) ونسبته الى عمه وخاله وزابه

**ترجمه**: بیاکه چابل ته وویل ، ته دخپل پلار نه یې یاته دفلانی زوئ نه یې دغصې په حال کې نوحد ورکول کیږي اوبې له غصې نه ، لکه دده له نیکه څخه دده نفي کول ،اوکوم عربي ته ویل ای نبطي، او ای داسمان د اوبو زو ، اولکه دده نسبت کول دده داکا یاماما یادپالونکي طرفته .

**تشریح**:(۴)که یوچا دغصې په حال کې دبل دنسب په نفي کولوسره ویل ، ته دخپل پلار زوئ نه یې نوقاذف ته به حد ورکول کیږي ،په دې شرط چې دمقذوف مور به مسلمانه او ازاده وي ولی چې دیوچا دنسب نفي کول په حقیقت کې دهغه پرموریاندي دزنا الزام لګول دي ،یایې دغصې په حال کې دیوچا دپلارنوم واخیست اووې ویل ، ته دپلاني زوئ نه یې نوده ته به حدورکول کیږي ،ولی چې دغصې په حال کې دښکنځاکولوپرطریقه له دي ټولو څخه حقیقي معنی مرادیږي،اوکه حال دغصې نه وو نوده ته به حدنه ورکول کیږي ولی چې په داسي حال کې له دي څخه حقیقي معنی نه مرادیږي،بلکه دعتاب پرطریقه ویل کیږي ګواکي دی وایي چې ته په اخلاقو او مېرانه کې دپلار په شان نه یې.

(۵) قوله کنفیه عن جده ای کمالایحد فی نفي القائل لغیره عن جده ،یعني لکه څرنګه چې بغیردغصې له حاله دیوچادنسب په نفي کولو سره نفي کونکي ته حد نه ورکول کیږي همدا شان که یوچادبل دنیکه نوم واخیست اووېې ویل ته دپلاني (له پلاني څخه دده نیکه مراد دی ) زوئ نه یې،نوده ته حدنه ورکول کیږي ، ولی چې قائل په خپل قول کې ربښتنی دی په دي وجه چې مخاطب دخپل پلار زوئ دی نه دخپل نیکه .

(۶) قوله وقوله لعربی یانبطی ای کمالایحد فی قوله لعربی یانبطی ،یعني که څوک عربي شخص ته وواېي ای نبطي (نبطی ،عجمي اوګرانوته ویل کیږي) نوده ته به حدنه ورکول کیږي ،ولی چې له دې څخه مقصود بې اخلاقي یاپه نه فصاحت کې تشبیه ورکول دي ، دزناالزام نه دی.

(۷) قوله ویاابن ماء السماء ای کمالایحد فی قوله یاابن ماء السماء ،یعني که یوچابل ته وویل چې ای داسمان داوبو زویه نوقائل ته قاذف (دزناتهمت لګونکی) نه ویل کیږي ،ځکه دقائل داقول په حسن خلق اوپه سخا باندې دصفت کولو احتمال لري ولی چې دادصفایې اودسخاوت له کبله دنعمان ابن منذر دنیکه لقب دی.

(۸) قوله ونسبته الی عمه ای کمالایحد فی نسبة غیره الی عمه اوخاله ،یعني که یوچا دبل نسبت دهغه داکا یاماما یا پلندر (دموردخاوند) طرفته وکړ نوداشخص قاذف نه دی،ولی چې په عرف کې له دوئ څخه هریوه ته پلار ویل کیږي ،مثلاًدالله تعالی ﷻ په قول (قالوا نعبد الٰهک والٰه آبائک ابراهیم واسماعیل واسحاق ) (یعني موږعبادت کوو ستادخدای اوستادپلرونو حضرت ابرهیم علیه السلام اواسماعیل علیه السلام اواسحاق علیه السلام دخدای)کې اسماعیل علیه السلام دیعقوب علیه السلام پلار بلل شوی دی،حال داچې حضرت اسماعیل علیه السلام دیعقوب علیه السلام اکا وو،ولقوله ﷺ (الخال اب) (ماماپلاردی) اوپلندرته دتربیې له کبله پلار ویل کیږي.

(۹)ولو قال یاابن الزانیة وامه میتة فطلب الوالد اوالولد اوولده حد(۱۰)ولایطلب ولدوعبداباه وسیده بقذف امه(۱۱)ویبطل بموت المقذوف(۱۲)لابالرجوع والعفو(۱۳)ولوقال زنأت فی الجبل وعنی الصعود حد

**ترجمه:** اوکه یې وویل ای دزانیې زوی په داسې حال کې چې دهغه مور مړه شوې وه بیامطالبه وکړه پلار یازوئ یالمسي نوحد به ورکول کیږي ،اومطالبه نه شي کولای زوئ له خپل پلار څخه اوغلام له خپل بادار څخه دده پرمورباندې دتهمت ویلوله کبله ،اوحدباطلیږي دمقذوف دمرګ په سبب ،نه درجوع اومعاف کولو په سبب ،اوکه یې وویل، زنأت فی الجبل، اوختل یې مراد کړل نوحد به ورکول کیږي.

**تشریح:**(۹)که یوچابل ته وویل چې ،یاابن زانیة، (ای دزانیې زو) حال دا چې دده مورمحصنه( پاک لمنې وه )مړه شوې وه بیا دده ښځې پلار یازوئ یالمسي دحد مطالبه وکړه نوقاذف ته به حد ورکول کیږي.ولی چې ده پریومحصنه ښځه باندې دهغې له مرګ وروسته تهمت ولګوی، نوهرشخص ته چې په نسب کې پر مړي باندې دتهمت دلګولوپه وجه پېغور پېښیږي هغه دحدمطالبه کولای شي یعني دمقذوف اصولو اوفروعوته دمطالبې حق شته.

(۱۰) او زوئ پرخپل پلار اوغلام پرخپل بادار باندې دحدقذف جاري کولو مطالبه نشي کولای مثلاً پلار دخپل زوئ پرمور باندې دزناتهمت ولګوی اوهغه په خپله مړه وه ، یامولی (بادار) دخپل غلام پرمور باندې دزناتهمت ولګوی، نوزوئ پرخپل پلار باندې اوغلام پرخپل مولی باندې دحدقذف جاري کولو مطالبه نشي کولای ،ولی چې پلار اومولی ته دحق په وجه سره زوئ اوغلام سزا نشي ورکولای همدا وجه ده چې له پلار څخه دوزئ قصاص اوله مولی څخه دغلام قصاص نشي اخیستل کېدلای.

(۱۱) که یوچا پربل باندې دزنا تهمت ولګوی اومقذوف دحدقذف مطالبه وکړه له حدجاري کولو وړاندې مقذوف مړشو نوحد باطلیږي، ولی چې حدقذف په یوه طرز دبنده حق دی چې له هغه څخه پېغور دفع شي،اوپه بل طرز دشریعت حق دی چې دهغه په ذریعه باندې عالم له فساد څخه محفوظ شي ،

اوداحنافو رحمهم الله په نزد په دې كې دشريعت حق غالب دى لهذا په دې كې ميراث نه جاري كيږي اوپه خپله صاحب الحق دمطالبې اهل نه دى په دې وجه حد باطليږي.

(۱۲) قوله لابرالجوع والعفواى لايبطل بالرجوع عن الاقرار ولابالعفو عن القاذف، يعني كه يو شخص پربل باندې له تهمت ويلو وروسته وويل چې مادرواغ ويلي وو، ياچې پركوم شخص باندې تهمت لګول شوى وو هغه وويل ما قاذف ته عفوه كړې ده ، نوپه دې دواړوصورتونو كې حدقذف نه معطل كيږي ولى چې په دې كې دبنده اوشريعت دواړو حق دى،نودحق عبدكيدلوپه وجه په رجوع كولوسره حدنه معافيږي اودحق شرع دكيدلوپه وجه سره دمقذوف په معافولوسره نه معافيږي .

(۱۳) كه يوكس بل ته دغضب (غصې) په حال كې وويل ،زنأت في الجبل ،اودعوه يې وكړه چې زمامراد ووچې ته پرغره باندې و ختلې،نودشيخنو رحمهما الله په نزد دده دعوه نه قبليږي ده ته به حدقذف وركول كيږي، حال دا چې د امام محمد رحمه الله په نزد ده ته حدنه وركول كيږي، ولى چې لفظ د زنأت په همزه سره دختلوپه معنى كې حقيقت ده اودزناپه معنى كې مجاز ده ،كله چې يې له هغه سره غر ذكركړنودادختلو معنى متعينه كوي ،لهذا دا دزنا تهمت نه دى،دشيخينودليل دادى چې زنات دالف په شان زنأت په همزه باندې هم دبدفعل په معنى كې ويل كيږي ، ځكه بعض عرب خفيف الف ته همزه واي لكه همزې ته چې نرم الف وايي، اودغصې حالت دبدې معنى مرادبدل متعين كوي،لهذا دتهمت دى په دې وجه به حدجاري كيږي.

**ف**: كه يې دغضب په حالت كې ،ويلې وي نودشيخينو قول راجح دى،لمافي الدرالمختار:(او)بقوله(زنات في الجبل) بالهمزه فانه مشترک بين الفاحشة والصعود وحالة الغضب تعين الفاحشة .قال العلامة ابن عابدين : وان قال عنيت به الصعود (الدرالمختار مع الشامية:۱۸۵/۳)

(۱۴)وَلَوْقالَ يازانِي وَعَكَسَ حُدَّا(۱۵)وَلَوْقالَ لِامْرَأَتِهِ يازانِيَةُ وَعَكَسَتْ حُدَّتْ وَلَالِعَانَ(۱۶)وَلَوْقالَتْ زَنَيْتُ بِكَ بَطَلَا(۱۷)وَإِنْ أَقَرَّ بِوَلَدٍ ثُمَّ نَفَاهُ لَاعَنَ(۱۸)وَإِنْ عَكَسَ حُدَّ(۱۹)وَالْوَلَدُ لَهُ فِيهِمَا(۲۰)وَلَوْقالَ لَيْسَ بِابْنِي وَلَابِابْنِكَ بَطَلَا

**ترجمة**:كه يوشخص بل ته وويل،اى زاني،هغه دا خبره بيرته ده ته وكړه،نودواړوته به حد وركول كيږي،اوكه يې خپلې ښځې ته وويل ،اى زانيه ،ښځې بيرته ده ته داخبره وكړه ،نوښځې ته حدقذف وركول كيږي،اولعان نشته ،اوكه يې په خواب كې ورته وويل چې ماله تاسره زنا كړې ده ، نو دواړه باطليږي. اوكه يې دزوئ اقراروكړبيايې هغه نفي كړ ،نولعان دې وكړي ،اوكه يې ددغه عكس وكړنو حد قذف به وركول كيږي،اوكوچنى دده په دواړو صورتونو كې،اوكې وويل چې دا زمازوئ نه ده اونه ستازوئ ده نودواړه باطليږي.

**تشريح**: (۱۴) كه يوشخص بل ته وويل ،يازاني (اى زناكاره ) هغه ده ته داخبره بيرته وكړه ،يعني هغه په ځواب كې ورته وويل ،لابل انت . (نه بلكه ته) نو دوئ دواړوته به حدقذف وركول كيږي ، داول وجه خوظاهره ده چې ښكاره تهمت يې ولګوى ،اود دوهم دحدقذف وجه داده چې د ،لابل انت،معنى ، لابل انت زان، (نه بلكه ته زانى يې) ده ، نوځرنګه چې ده هم دزنا تهمت ولګوى ، لهذا ده ته به هم حدقذف وركول كيږي .

(١٥) كه يوشخص خپلي ښځې ته ووېل ،يازانية، (اى زناكاري) ښځې داخبره بيرته ده ته وكړه يعني په ځواب كې ورته ووېل ،يازانى(اى زناكاره) نوپرښځه باندي حدقذف جاري كيږي ،پردواړو باندي لعان نشته ،ځكه نراوښځې دواړوپه خپل منځ كې يوله بله الزام لګوي،يادنر الزام لعان واجبوي اودښځې الزام حد واجبوي ،بس پرښځه باندي دحد جاري كولو په وجه سره لعان ساقطيږي،ولى چاته چې حد وركړل شي هغه دلعان اهل نه وي ،اودلعان په مخته كولو سره حدقذف نه باطليږي،ځرنګه چې لعان دحد زناپه معنى كې دى ،لهذا دده دفع كول مطلوب دي ،بس نوددفع لعان همدا حيله ده چې پرښځې اول حدقذف جاري شي.

(١۶) اوكه په مذكوره صورت كې ښځې خاوندته په ځواب كې ووېل هو ماله تاسره زناكړې ده،نوحد اولعان دواړه باطليږي،په دي وجه چې ذلته په حداولعان هريوه كې شک پيداشو ،ځكه كيدلاى شي چې دښځې دي دا مراد وي چې له نكاح څخه وړاندي مي له تاسره زناكړې ده،نوپه دې صورت كې پرښځه باندي حدواجبيږي اوپرخاوند باندي لعان نه واجبيږي،ځكه ښځې دخاوندتصديق وكړ ، اوكيدلاى شي چې دښځې دى مراددا وي چې زمازناخوهغه وطى ده كومي چې مي له نكاح څخه وروسته له تاسره كړې دي،ځكه كوم پردي سړي ته مي پرځان قدرت نه ده وركړى،نوپه دې صورت كې لعان واجبيږي اوپرښځه باندي حدنه واجبيږي ،ځكه دخاوند له طرفه الزام شته اودښځې له طرفه نشته ، لهذاپه دواړو كې دشک په وجه سره دواړه باطليږي.

(١٧) كه دماشوم له زيږيدلوڅخه وروسته خاوند اقراروكړ چې داماشوم له ماڅخه دى ،بيايې له هغه څخه انكار وكړ،نولعان به كوي،ولى چې اول دده له اقرارڅخه دماشوم نسب پرده لازم شو ، بياچې كله ده دماشوم دنسب نفي وكړه نوپرښځه باندي تهمت لګونكى شو ،لهذا دښځې په مطالبه كولوسره به لعان كوي.

(١٨) قوله وان عكس حد اى لوعكس بان نفاه ثم اقر بانه ولده حد . اوكه يې ددې عكس وكړ ،يعني خاوند اول دماشوم دنسب نفي وكړه بيايې اقراروكړ، نوپرخاوندبه حدقذف جاري كيږي،ولى كله چې خاوند دخپل ځان تكذيب وكړ نولعان كوم چې دنفى ولد په وجه سره لازم شوى وو هغه باطل شو،ولى چې لعان حد ضروري دى ،په دي وجه چې له زوجينو څخه هريوه له شاهدانوبغير دبل تكذيب كا وو نودمجبورى له كبله يې لعان كوى ،حال دا چې اصلي حدخو حدقذف وو،بياچې كله خاوند خپل ځان دروا غجن كړ، نوددواړو طرفينو له طرفه تكذيب باطل شو ،لهذا داصلي حد (يعني حدقذف) طرف ته به رجوع كيږي.

(١٩) اودماشوم نسب په دواړو صورتونو كې له خاوند څخه ثابتيږي ،ولى چې په دواړو صورتونو كې دخاوند له طرفه دماشوم دنسب اقرار متحقق شو ،دومره فرق شته چې په يوه صورت كې اقرار وړاندي دى اوپه بل صورت كې وروسته دى.

(۲۰) اوکه خاوند دماشوم طرف ته په اشاره کولوسره ښځي ته وويل چي دازما زوي نه دی اونه ستازوي دی،نوحد یالعان هیڅ نه واجبیږي، ولی چي ده له ولادت څخه انکار وکړ ،اونه ولادت څخه انکار له زنا څخه هم انکار دی ،لهذا دا دزناتهمت نه دی ،په دي وجه هیڅ نه واجبیږي .

(۲۱) وَمَنْ قَذَفَ امْرَأَةً لَمْ يُدْرَ أَبُو وَلَدِهَا (۲۲) أَوْ لَاعَنَتْ بِوَلَدٍ (۲۳) أَوْ رَجُلًا وَطِئَ فِي غَيْرِ مِلْكِهِ (۲۴) أَوْ أَمَةً مُشْتَرَكَةً (۲۵) أَوْ مُسْلِمًا زَنَى فِي كُفْرِهِ (۲۶) أَوْ مُكَاتَبًا مَاتَ عَنْ وَفَاءٍ لَا يُحَدُّ

**ترجمه**:که چاتهمت ولګوی پرداسي ښځه باندي چي دهغي دزوئ پلار معلوم نه وي،یاهغي لعان کړی وي، یایي پرداسي شخص باندي تهمت ولګوی کوم چي په غیرملک کي وطي کړي وي ،یایي له مشترکي مینځي سره وطي کړي وي ،یا پرداسي مسلمان باند تهمت ولګوي چي هغه دکفر په حال زنا کړي وي ،یاپرداسي مکاتب باندي تهمت ولګوي چي هغه پوره بدل کتابت پري پښی وي مرشوی وي، نوحد نشته .

**تشریح**:(۲۱) دمصنف په قول،من قذف امرأة لم یدرابو ولدها الخ،کي من موصوله ده او قذف امرأة له خپلو معطوفاتو سره صله ده ،موصول سره له صلي مبتدأ ده ،اولایحد، یي خبردی،یعني که یوڅوک پرداسي ښځه باندي تهمت ولګوي چي دهغي دزوئ پلار معلوم نه وي ،نوپرتهمت لګونکي باندي حد قذف نشته ،ځکه له ښځي سره دبې پلاره زوئ اوسیدل دزناعلامة ده ،لهذا دا ښځه محصنه نه ده ، اوپرغیرمحصنه باندي دتهمت لګیدلو له کبله حد قذف نه واجبیږي،

(۲۲) همدا شان که دکومي ښځي خاوند دهغي دماشوم دنسب له خپله ځانه په نفی کولوسره له هغي سره لعان وکړ، بیاپردي ښځي باندي یوچاتهمت ولګاوو ،نوداکس قاذف نه شمارل کیږي ،ولی چي دملاعني دماشوم نسب ثابت نه دی، نودادزناعلامة ده ،لهذا دامحصنه نه ده ،نوپردي دتهمت لګولو والاباندي حدقذف نه جاري کیږي،اوکه لعان دولد له نفي کولو ماسوادکوم بل الزام په وجه سره شوی وي ،نو ددي قاذف ته حدقذف ورکول کیږي ،ځکه دا ښځه محصنه ده .

(۲۳) همدا شان که کوم شخص په غیرملک کي حرامه وطی کړي وي ،نوپرده باندي تهمت لګونکي ته حدقذف نه ورکول کیږي ،ځکه دزناکولو په وجه سره عفت پاتي نه شو ،لهذا داشخص محصن نه دی، اوپر غیرمحصن باندي تهمت لګونکي ته حدقذف نه ورکول کیږي،ولی چي په داسي صورت کي تهمت لګونکی په خپل قول کي صادق دی.

(۲۴) همدا شان که کوم شخص له مشترکي مینځي سره وطي کړي وي ،بیاپرده باندي یوچا تهمت ولګوی، نو تهمت لګونکي ته حدقذف نه ورکول کیږي ،ځکه داشخص من وجه په غیرملک کي وطي کونکی دی،لهذا محصن نه دی،اوپرقاذف باندي دحد جاري کولو شرط دادی چي مقذوف به محصن وي.

(۲۵) همدا شان که یوچا پرداسي شخص باندي د زنا الزام ولګوی چي هغه دکفرپه حال کي زناکړي وه ،یایي پرداسي ښځه باندي دزنا الزام ولګوی چي هغي دکفرپه حال کي زناکړي وه ،نوپه دغه دوو صورتونو کي هم پرقاذف باندي حدنشته ،ځکه له دغه مقذوف نر اوښځي څخه دزنا صدورشوی دی،لهذا نودوئ دواړه محصن نه دي،اوپرغیرمحصن باندي پرتهمت لګونکي حدقذف نه جاري کیږي .

(۲۶) همداشان كه يوڅوك پرمكاتب باندي دزناتهمت ولګوي،بياده دبدل كتابت په اندازه مال پرېښودی اومړشو، نوده پرقاذف حدنه جاري كېږي ،ولی چې دده په ازادي كې شبه پيداشوه ،په دي وجه چې دده په ازادي كې دصحابه كرامو ﷡ اختلاف دی،چې دا ازادمړشواوكه غلام ، بس دشک په وجه سره دی محصن نه شمارل كيږي.

(۲۷) وَحُدَّ قَاذِفُ وَاطِئِ أَمَةٍ مَجُوسِيَّةٍ وَحَائِضٍ وَمُكَاتَبَةٍ (۲۸) وَمُسْلِمٍ نَكَحَ أُمَّهُ فِي كُفْرِهِ (۲۹) وَمُسْتَأْمِنٍ قَذَفَ مُسْلِمًا (۳۰) وَمَنْ قَذَفَ أَوْ زَنَى أَوْ شَرِبَ مِرَارًا فَالْحَدُّ لِهَذَا لِكُلِّهِ

**ترجمه**: اوحد وركول كيږي له مجوسي مينځي،اوحائضې ښځي ،اومكاتبې ،سره وطي كوونكي باندي تهمت لګولو والاته ،اوپرداسي مسلمان باندي تهمت لګولو والاته چې هغه دكفرپه حال كې له مور سره نكاح كړې وي ،اوداسي مستأمن ته چې هغه پرمسلمان باندي تهمت لګولی وي ،اوكه چاتهمت لګولی وي ،ياېې زناكړې وي ،ياېې شراب څښلي وي ،دېرځله يياحد وركړل شي نوداحد دټولو لپاره كفايت كوي.

**تشريح**: (۲۷) كه كوم شخص له مجوسي مينځي سره ياله خپلي حائضې ښځي سره ياله مكاتبې مينځي سره جماع (وطي) كړې وي بياپرده باندي يوڅوک دزناتهمت ووای نوپه دغه دري سره صورتونو كې به پرقاذف حدجاري كيږي ،ولی چې په دي دريو صورتونو كې له قيام ملک سره سره دوطي حرمت يوموقت حرمت دی،يعني په مجوسه كې سبب دحرمت مجوسيه كيدل دی ،اوپه حائضه كې حيض دی،اوپه مكاتبه كې مكاتبه كيدل دی،لهذا داحرمت لعينه نه دی بلكه لغيره دی،اوقاعده ده چې كه كوم شخص مرتكب دوطي حرام لعينه وو دده قاذف ته حدنه وركول كيږي ،اوكه كوم شخص مرتكب دوطي حرام لغيره وو دده قاذف ته حد وركول كيږي.

(۲۸) قوله ومسلم نكح امه ای وحدقاذف مسلم نكح امه ،يعني كه يوشخص پرداسي مسلمان باندي دزنا تهمت ولګوي چې هغه په حال دكفركې له خپلي مور سره نكاح كړې وي ، نوپه دې صورت كې هم دامام ابوحنيفه ﷬ په نزد قاذف ته حدقذف وركول كيږي ،حال دا چې دصاحبينو په نزد حدنه وركول كيږي ، دا اختلاف پردې خبره بنادی چې دامام ابوحنيفه ﷬ نزد دمجوسيانو نكاح كول له ابدي محرماتوسره په دارالحرب كې صحيح ده ، لهذا داشخص محصن دی دده قاذف ته حد وركول كيږي،اودصاحبينوپه نزد نكاح نه ده صحيح لهذا داشخص محصن نه دی دده قاذف ته حد نه وركول كيږي،

(۲۹) قوله ومستامن قذف مسلما ای حدمستامن قذف مسلما ،يعني كه كوم حربي كافر امن واخلي دارالاسلام ته راشي بيادلته پريو مسلمان دزنا تهمت ولګوي نوپرده باندي حد قذف جاري كيږي،ځكه حدقذف دبنده حق دی،اوحربي چې دلې راغلی نوده پرخپل ځان دبندګانو دحقوقو دپوره كولو التزام كړی دی،په دي وجه له ده څخه دبنده حق (يعنی حدقذف ) وصول كيږي،پاته حد دشرابو ياحد دزنا وغيره پرده باندي نه جاري كيږي.البته پرذمي باندي داټول حدود جاري كيږي.

(۳۰) كه يوشخص څوځله پريوچاباندي دزناتهمت ولګوي ياڅوځله زناوكړي ياڅوځله شراب وڅښي بياپرده باندي يوځل حدجاري شي نوڅومره ځله چې يې دا عمل كړی وي دا حد دهغوئ ټولو لپاره

کافي کيږي،ځکه په حدودوکې تداخل کيږي،ليکن که فعل مختلف وو مثلاًزنايې وکړه بيايې شراب وڅښل يايې پريو چادزناتهمت ولګوی بيايې غلا وکړه نوپه دغوصورتونو دحدودو تداخل نه کول کيږي.

## فَصْلٌ فِي التَّعْزِيرِ

### دا فصل په بيان دتعزير کې دی

تعزيرپه لغة کې مطلق تاديب(ادب ورکولو) ته ويل کيږي ،اوپه شريعت کې هغه تاديب(ادب ورکولو) ته ويل کيږي کوم چې له حدڅخه کم وي ،مصنف رحمه الله چې له زواجرمقدره (يعني حدودو) څخه فارغ شو ،نود زواجر غيرمقدره (يعني تعزير) په بيان يې شروع وکړه.

(۱) وَمَنْ قَذَفَ مَمْلُوكًا أَوْ كَافِرًا بِالزِّنَا أَوْ مُسْلِمًا بِيَا فَاسِقُ يَا كَافِرُ يَا خَبِيثُ يَالِصُّ يَا فَاجِرُ يَا مُنَافِقُ يَا لُوطِيُّ يَا مَنْ يَلْعَبُ بِالصِّبْيَانِ يَا آكِلَ الرِّبَا يَا شَارِبَ الْخَمْرِ يَا دَيُّوثُ يَا مُخَنَّثُ يَا خَائِنُ يَا ابْنَ الْقَحْبَةِ يَا زِنْدِيقُ يَا قَرْطَبَانُ يَا مَأْوَى الزَّوَانِي أَوِ اللُّصُوصِ يَا حَرَامْزَادَهْ عُزِّرَ

**ترجمه**:او څوک چې تهمت ولګوي پرغلام ياکافرباندي دزنايايو مسلمان ته ووايي چې ای فاسقه ،يااى کافره،يااى خبيثه ، يااى غله ، يااى فاجره، يااى منافقه،يااى لوطى ، يااى له کوچنيانوسره بازى کونکې،يااى سود خوره ،يااى شراب خوره،يااى ديوثه ،يااى نرښځيه، يااى خائنه ،يااى درنډی زو، يـ اى زنديقه ،يااى بېغيرته، يااى دزانيانو يادغلوادې،يااى حرامې،نوپر دې ټولو به تعزيرورکول کيږي.

**تشريح**: که چا پرمينځه ياغلام ياکافرباندي دزناتهمت ولګوي ، نو قاذف ته به حدنه ورکول کيږي، ځکه دامذکوره افراد ټول غيرمحصنين دي اوپرغيرمحصن باندي تهمت ويونکي ته حد نه ورکول کيږي.البته قاذف ته تعزير ورکول کيږي، ځکه ده پر مذکوره افرادو داسې تهمت ولګوی چې دشريعت له جانبه پرهغه باندي کوم حد نه ده مقرر شوی،اوکه کوم شخص پرمحصن مسلمان له زنا پرته کوم بل الزام ولګوي ،مثلاً ورته وې ويل ،اى فاسقه، يااى کافره ،يااى خبيثه، يااى غله ،يااى فاجره ،يااى منافقه، يااى لواطت کونکې، يااى له کوچنيانوسره بازی کونکې،يااى سود خوره ، يااى شراب خوره ، يايې ورته وويل اى ديوثه ،(ديوث هغه شخص ته ويل کيږي چې په خپله ښځه باندي زنا کوي،ياهغه ته ويل کيږي چې دخپلې ښځې په بدکارۍ باندي غيرت نه ورځي ) يايې ورته وويل چې اى نرښځى يه ، يااى په امانت کې خيانت کونکې،يااى درنډی زو ، يااى بې دينه،يااى دوثه (قرطبان د ديوث مرادف دی) يايې ورته وويل اى دزناکارانوادې،يااى دغلوادې، يااى حرا م زاده ،نوپه دا ټولو صورتونوکې هم الزام لګونکي ته تعزير ورکول کيږي،ځکه ده په دامذکوره الفاظو پرمسلمان باندي داسې عيب ولګوی چې په شريعت کې دهغه حد نشته ، لهذا تعزير ورکول کيږي.

ف:دتعزيرپه باره کې قاعده داده ، چې که قائل دمخاطب طرف ته داسې فعل اختياري منسوب کړکوم چې شرعاًحرام وي ياعرفادعار(شرم )باعث وي نو قائل ته به تعزيرورکول کيږي الاداچې هغه صريح درواغ وي لکه يوچاته کارغه ،سپى ويل صريح درواغ دي.

(۲) وَبِيَا كَلْبُ يَا تَيْسُ يَا حِمَارُ يَا خِنْزِيرُ يَا بَقَرُ يَا حَيَّةُ يَا حَجَّامُ يَا بِغَاءُ يَا مُؤَاجِرُ يَا وَلَدَ الْحَرَامِ يَا عَيَّارُ يَا نَاكِسُ يَا مَنْكُوسُ يَا سُخْرَةُ يَا ضُحْكَةُ يَا كَشْخَانُ يَا أَبْلَهُ يَا مُوَسْوَسُ يَا مَنْحُوسُ لَا

**ترجمة**: اواى سپيه ،اواى منده ،اواى خره ،اواى خنزيره،اواى غويه ،اواى ماره ،اواى رزيله ، اواى بدكاره، اواى پرزنامزدوري اخيستونكي، اواى حرامي،اواى عيار،اواى سرتيتي،اواى بې عقله،اواى مسخري،اواى پسخندوهونكي،اواى بې شرمه ،اواى بې وقوفه ، اواى خطاايستونكي، اواى منحوس، ويلوكي تعزير نشته .

**تشريح**:(۲) قوله وبيا كلب اى لوقذف مسلما بقوله يا كلب ،يعني كه يوه شخص بل ته وويل ، اى سپيه ،ياای منده ياای خره ياای خنزيره ياای غويه ياای ماره ياای حجامه(رزيله )ياای بدكاره مخنثه ياای پرزنا مزدوري اخيستونكي ياای حرامي يااو اواره يااوسرنگون ياادوباره بيمارهونى والا يا اومسخرى يااوپسخندوهونكي(چې دده پركيوخلك خاندي) ياای بې غيرته ياای بې وقوفه يااو ورغلانى والى(شيطان ) يااومنحوس،نودده غوالفاظو ويونكي ته به تعزير نه وركول كيږي ځكه ده پر هغه باندي كوم عيب نه دى لگولى،ځكه دا يقيني ده چې هغه شخص خروغيره نه دى،لهذا دا دصريح درواغ كيدو په وجه سره په هغه پوري كوم عيب نه دى ملحق شوى،په دي وجه ويلو والاته حد نه وركول كيږي، يوقول دادى چې چرنگه چې په عرف كې دا ښكنځل بلل كيږي په دي وجه ده ته تعزير وركول كيږي، دځينو حضراتو رائ داده چې كه يې په دي الفاظو سره كوم شريف شخص مخاطب كړي نو تعزير به وركول كيږي ځكه شريف شخص په دغه الفاظو باندي وحشت محسوسوي، اوكه يې كوم عام شخص ته دا سي الفاظ استعمال كړل نوتعزير به نه وركول كيږي .

(۳)وَأَكْثَرُ التَّعْزِيرِ تِسْعَةٌ وَثَلَاثُونَ سَوْطًا وَأَقَلُّهُ ثَلَاثَةٌ (۴)وَصَحَّ حَبْسُهُ بَعْدَ الضَّرْبِ (۵)وَأَشَدُّ الضَّرْبِ التَّعْزِيرُ ثُمَّ حَدُّ الزِّنَا ثُمَّ الشُّرْبِ ثُمَّ الْقَذْفِ

**ترجمة**: اودتعزير زياته اندازه نه دېرش(۳۹ )دُري ده،اوكمه اندازه يې دري (۳ )دُري ده، اوصحيح دى دده بندي كول ورسته تر وهلو ،اوترټولو سخت وهل دتعزير دي،بيادحدزنا ، بيادشرابو دڅښلو، بيادحد قذف

**تشريح**:(۳ ) مصنف رحمه الله فرمايي چې دتعزير زياته زياته اندازه نه دېرش (۳۹ ) دري ده، په دي وجه چې په حدقذف كې دغلام حدڅلوېښت (۴۰ ) دري دي ،نودتعزيرلپاره زياته اندازه نه دېرش (۳۹ ) دري مقرري شوې چې ترحد پوري ونه رسيږي،دادطرفينو رحمهما الله مذهب دى، امام ابويوسف رحمه الله فرمايي چې تعزير تر پنځه اويا (۷۵ ) دروپوري رسيدلاى شي ،ولى چې دا له حضرت على رضي الله عنه څخه منقول دى،اوكمه اندازه دتعزير دري (۳ ) دري دي ،ليكن كله كله تردغه په كم باندي هم مقصود حاصليږي ، لهذا صحيح داده چې كمه اندازه دتعزير دقاضي رأي ته مفوض دى.

**ف** : دطرفينو قول راجح دى، لمافى ردالمحتار:وفى الحاوي القدسي قال ابويوسف واكثره فى العبد تسعة وثلاثون.......وبه ناخذ فعلم ان الاصح قول ابى يوسف ،بحر قلت ......ولايلزم من هذا الترجيح قوله على قولهما الذى عليه متون المذهب مع نقل العلامة قاسم تصحيحه عن الأئمة.(ردالمحتار:۳/۱۹۴)

(۴ ) كه امام په باب دتعزير كې له دروسره دمجرم بندي كول مناسب وګڼل نوبندي دي هم كړي ولى چې مقصود تأديب دى.نوكه د امام دا رأيه وه چې ادب صرف په وهلو باندي حاصليدلاى شي نوپه وهلو دي اكتفا وكړي. اوكه نه نوبندي دي هم كړي .

(۵) ددروپه وهلو کې ترټولو سخت وهل په تعزیرکې دي ولی چې په ده کې ددرودشمارپه اعتبارسره تخفیف کړل شوی دی نوپه وهلو کې به سختې کیږي چې مقصودفوت نه شي،بیا له تعزیر څخه وروسته په حدزناکې سختي ده،ولی چې زنا دېرغټ جرم دی،حتی په زناکې رجم چې سخته سزا ده هم مشروع ده ،بیاپه دشرابوپه حدکې سختي ده ،ولی چې ددي حد سبب (یعنی شراب څښل) یقیني دی،بیا دحد قذف درجه ده ولی چې ددي سبب یقیني نه دی،ځکه چې کیدلای شي چې الزام لګونکی دي رښتیاوایي.

(۶) وَمَنْ حُدَّ أَوْ عُزِّرَ فَمَاتَ فَدَمُهُ هَدَرٌ (۷) بِخِلَافِ الزَّوْجِ إِذَا عَزَّرَ زَوْجَتَهُ لِتَرْكِ الزِّينَةِ وَالْإِجَابَةِ إِذَا دَعَاهَا إِلَى فِرَاشِهِ وَتَرْكِ الصَّلَاةِ وَالْغُسْلِ وَالْخُرُوجِ مِنْ الْبَيْتِ

**ترجمة:** اوچاته چې حدورکړل شي یاتعزیر ورکړل شي بیاهغه مړشي نووینه یې هدرده ،په خلاف د خاوند چې هغه تعزیر ورکړي خپلي ښځي ته دترک زینت په سبب یادخبري د نه منلو په وجه چې هغه یې راوبولي خپلي بستري ته یادلمانځه اوغسل پرترک باندي یاله کور څخه پروتلو باندي

**تشریح:** (۶) کوم شخص ته چې امام حدیاتعزیر ورکړي چې دی له هغه څخه مړشي نودده وینه مفته ده یعني دهغه هیڅ دیت یاقصاص نشته ، ولی چې امام دشریعت له طرف څخه پردي کا رباندي مأموردی ، اومأمور فعل مقیدپه شرط دسلامتي سره نه وي.

(۷) البته که خاوند خپلي ښځي ته پر ځان نه بنایسته کولو یاخبره نه منلوچې هغه یې راوبولي بستري ته، یادلمانځه پرنه کولو یادغسل پرنه کولو یاله کورڅخه پروتلو باندي تعزیر ورکړي،اوهغه مړه شي،نوپرده باندي دیت لازم دی،ولی چې دخاوندلپاره ښځي ته تعزیر ورکول جائزدی،اوجواز دفعل مقید په قید دسلامتي سره وي ، لکه پرلاره باندي تلل جائزدي لیکن په شرط دسلامتي سره مقید دي.

**دمالي جرمانې شرعي حکم** ، مالي جرمانه داحنافو رحمهم الله په نزد جائز نه ده ،اوکه دتنبیه په غرض کوم مرتکب دکبیرې یابې لمانځه ته داسي جرمانه ورکول کیږي ، نودجواز صورت یې دادی ، چې داجرمانه دي علیحده کښېښودل شي ، بیادي یووخت بیرته هغه شخص ته ورکړل شي له کوم چاڅخه چې اخیستل شوې وه، یادي دهغه په اجازه دخیرپه کارکې مصرف کړای شي ، لمافی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب التعزیر:لاباخذالمال فی المذهب ،بحر،وفیه عن الاوازیة وقیل یجوز ومعناه ان یمسکه مدة لیزجر ثم یعیده الیه الخ (فتاوی دارالعلوم دیوبند: ۲۳۵/۱۲)

## كِتَابُ السَّرِقَةِ

### داکتاب دسرقې په بیان کې دی

سرقة په لغت کې دیوچایوشی په پټه بې له اجازته را اخیستلو ته ویل کیږي ، که هغه مال وي اوکه غیر مال ، او دشریعت په اصطلاح کې سرقة (چې پرهغې حکم شرعي یعني پرې کېدل دلاس مرتب وي) داده چې کوم عاقل بالغ دیوچا محفوظ مال چې په اندازه دلس درهمو یازیات وي په پټه واخلي ، له ماقبل سره وجه

دمناسبت داده ، چې له حدودو څخه مقصود دځان اوعقل اوعزت ساتنه ده ، له دي دريوواړو سره متعلقې سزاګانې له نفس سره متعلق مزاجرات دي ،نومصنف رحمه الله له هغومزاجراتو څخه فارغ شو چې دنفوسو له ساتنې سره يې تعلق وو ،نوشروع يې وکړه په هغه مزاجراتوباندي چې داموالوله ساتنې سره يې تعلق دی، ځرنګه چې نفس اصل دی ترمال په دي وجه يې هغه مقدم کړکوم چې له نفس سره تعلق لري .

(١) هِيَ أَخْذُ مُكَلَّفٍ خُفْيَةً قَدْرَ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ مَضْرُوبَةٍ مُحْرَزَةٍ بِمَكَانٍ أَوْ حَافِظٍ (٢) فَيُقْطَعُ إِنْ أَقَرَّ مَرَّةً أَوْ شَهِدَ رَجُلَانِ (٣) وَلَوْ جَمَعَا وَالْآخِذُ بَعْضُهُمْ قُطِعُوا إِنْ أَصَابَ لِكُلٍّ نِصَابٌ

**ترجمة**: هغه دمکلف په پټه طريقه اخيستل دي په اندازه دلس درهموآراسته شوي کوم چې محفوظ وي دمکان ياچوکيدار په ذريعه باندي ،نولاس يې پرې کيږي که اقراروکړي يوځل ياشاهدي ووای دوه خلګ .اوکه غلاکونکي يو جماعت وي او اخيستلو والابعض وي نودټولو لاسونه پرې کيږي که مسروقه مال هريوه ته په اندازه دنصاب رسيدی.

**تشريح**: مصنف رحمه الله دسرقې (غلا) شرعي تعريف داسې کړی دی، که کوم مکلف انسان مضروبة لس دراهم يا زيات له يومحفوظ ځای څخه يادچاله پهرې څخه په پټه طريقه سره ويسې دې ته سرقه وايي ،ځرنګه چې له سرقې څخه دلته هغه سرقه مراد ده چې دلاس پرې کېدل ورباندي مرتب وي ، نودمکلف په قيدسره غيرمکلف خارج شو، ځکه جنايت بغير له تکليف څخه نه وي، اودلاس پرې کيدل دجرم سزا ده،دخفية په قيدباندي غصب خارج شولی چې په غصب کې مال په پټه نه وړل کيږي ، او دلس درهمويازياتو په قيد سره احتراز راغی له هغه چې له لس درهمو څخه کم مال راواخلي نوپه دغه کې دلاس پرې کيدل نشته ،ځکه چې له عبد الله ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت شوی دی چې درسول الله ﷺ په زمانه کې به لاس ديوه ډال (سپر)په قيمت پرې کيدو ،اوپه هغه وخت کې دډال قيمت لس درهمه وو .

دجوړ والي په قيد سره له هغه صورت څخه احتراز وشو چې که يوچا دلس درهمو برابر دسپينوزرو داسې ټوکړې غلاکړې چې دهغه قيمت له لس درهمو څخه کم وي نودده لاس نه پرېکيږي، دمحفوظ مکان يا چوکيدار څخه دوړلو په قيد سره له غيرمحفوظ مال څخه احترازوشو ، ځکه په خفيه طريقه دمال وړل بې له محفوظ کيدلو څخه نه شي کيدلای ، اودا شرط هم دی چې په محفوظ کيدلو کې به شبه نه وي ځکه شبه حد دفع کوي .

**ف**: مګر دادي نه فهمول کيږي چې که په مذکوره شرائطو کې يوشرط نبستې شي نوغله ته به پوره ازادي ورکول کيږي، بلکه حاکم وخت دخپلې رأي مطابق ده ته تعزيري سزا ورکولای شي، کومه چې دجسماني دروسزاهم کيدلای شي،اودا دي هم نه فهمول کيږي چې په کوموصورتونو کې دغلا يوشرط نه شي موجودچې دهغه په وجه سره حدساقط شي نودده لپاره دا کار(غلا)جائز اوحلال شو، ځکه چې حدخو صرف دنيوي سزا ده اخروي سزاله دې څخه علاوه ده ، نودنيوې سزا له سقوط څخه دانه لازميږي چې بله سزادي هم ساقطه شي .

ف: احناف رحمهم الله فرمايي چې دمال هغه مقدار چې دهغه په غلا کولو باندي دغله لاس پري کيږي هغه رادی چې لس درهمه (۳۰.۴۰۲ گرام سپين زر) غلاکړي يادلس درهمو يا له هغه څخه دزيات قيمت کوم شی غلاکړي، يا يو دينار (۴.۰۸۶ گرام سره زر) غلا کړي يا ديوه دينار يا له هغه څخه دزيات قيمت شی غلا کړي.

(۲): که غله يو ځل دغلا اقرار وکړ نو دطرفينو رحمهما الله په نزد دده لاس پري کيږي ځکه چې غلا په يو ځل اقرارکولو باندي ظاهره شوه لهذا دقصاص او حدقذف په شان يو ځل اقرار کافي دی، همداشان که دو شاهدانو دغله دغلا شاهدي ورکړه نوهم دغله لاس پرېکيږي، لکه چې په نورو حقوقو کې، او دزيات احتياط لپاره دي امام له شاهدانو څخه دغلا دماهيت او کيفيت او دزمان او مکان او دمال مسروقه او دمسروق منه په باره کې پوښتنه وکړي ترڅو په يو دول دحد ددفع کولو حيله پيدا شي، دامام ابويوسف رحمه الله په نزد دغله دوه ځله اقرارکول ضروري دی، ځکه په دي کې حد دی، لهذا داقرار تعداد په اندازه دشاهدانو ضروري دی.

ف: دطرفينو قول راجح دی دامام ابويوسف رجوع هم ددوئ قول ته ثابته ده، لمافي الدرالمختار :( فيسقط ان اقربهامرة) واليه رجع الثاني. قال ابن عابدين: (قوله واليه رجع الثاني) اى ابويوسف وكان اولا يقول لايقطع الا اذااقر مرتين في مجلسين مختلفين كمافي الزيلعي (الدر المختار مع الشامية:۳/۲۱۳)

(۳) قوله ولو جمعاوالآخذبعضهم قطعواای لو كان السراق جماعة والآخذبعضهم قطعوا، يعني که په غلاکولو کې يو جماعت شريک شو مګرمال له دوئ څخه بعضوراپورته کړ اوپرټولو يې تقسيم کړ نوکه هريوه ته له مسروقه مال څخه لس درهمه رسيدل ياهريوه ته دونه مال رسيدو چې دهغه قيمت لس درهمه وو نو دهريوه لاس به پريکيږي، او که هريوه ته له لس درهمه څخه کم رسيدو نو ديوه لاس به هم نه پريکيږي، ځکه چې دنصاب په اندازه (لس درهمه) غلا کول موجب دحد دی، نو دهريوه په حق کې کمال نصاب معتبر دی، لهذا له نصاب څخه دکم رسيدلو په صورت کې دلاس پريکيدل نشته.

(۴) وَلَا يُقْطَعُ بِخَشَبٍ وَحَشِيشٍ وَقَصَبٍ وَسَمَكٍ وَطَيْرٍ وَصَيْدٍ وَزِرْنِيخٍ وَمَغْرَةٍ وَنُورَةٍ (۵) وَفَاكِهَةٍ رَطْبَةٍ أَوْ عَلَى شَجَرٍ وَلَبَنٍ وَلَحْمٍ وَزَرْعٍ لَمْ يُحْصَدْ (۶) وَأَشْرِبَةٍ وَطُنْبُورٍ (۷) وَمُصْحَفٍ وَلَوْ مُحَلًّى وَبَابِ مَسْجِدٍ (۸) وَصَلِيبِ ذَهَبٍ (۹) وَشِطْرَنْجٍ وَنَرْدٍ وَصَبِيٍّ حُرٍّ وَلَوْ مَعَهُ حُلِيٌّ (۱۰) وَعَبْدٍ كَبِيرٍ وَدَفَاتِرَ

**ترجمه**: او لاس نه پرېکيږي په لرګي، او په وابنه، او په نلانو، او په ماهي، او په مارغه، او په هرتال، او په ګيرو، او په چونه، او په لنده ميوه، يا پرونه باندي موجوده ميوه کې، او په شيدو، او په غوښه، او په کښت چې هغه نه وي ريبل شوی، او په څښونکو، او په ستار، او دقرآن مجيد په غلا کې که څه هم په زيور ښايسته شوی وي، او له دروازې دمسجد، او دسروزرو دصليب، او دشطرنج، او دنرد، او دازاد کوچني په غلاکولو کې که څه هم له هغه سره زيور وي، او دلوي غلام، او د دفاترو (کتابچو) په غلا کولو کې.

**تشريح**: (۴) کوم شی چې په دارالاسلام کې په مباح طريقه حقير موندل کيږي دهغه په پورته کولو باندي دپورته کونکی (غله) لاس نه پرېکيږي، لکه دسون لرګي يانالان ياوابنه ياماهي يامارغه ياهغه حيوان کوم چې ښکار کيږي ياهرتال ياګيرو ياچونه، ځکه کوم شی چې پرخپل اصلي صورت مباح پيدا کيږي په هغه کې رغبت کم وي، نو په دي وجه دحدزاجر دمقررکولو ضرورت نشته، او په داسي شيانو کې حفاظت هم ناقص

وي ،په دي وجه په دوئ کې قطع دلاس نشته ،هړتال ديو قسم زهريلي معدني جوهر دی ،اوګيرو يو قسم سره خاوره ده .

(۵) قوله ولاكهة اى لاقطع في سرقة فاكهة رطبة. کوم شی چې زرخرابيږي يعني تريو کال پوري نه شي پاته کيدلای نودداسي شئ دغلاکولو په صورت کې دغله لاس نه پري کيږي،لکه لنده ميوه ،ياپر درخته باندي ميوه ،ياشيدي ياغوښه ،ياهغه کښت چې تراوسه لاريبل شوی نه وي ،وغيره،ځکه پيغمبر ﷺ فرمايلي دي ﴿لاقطع في الطعام﴾ (يعني په خوراک کې دلاس قطع نشته ) اودخوراک معنی په مايتسارع اليه الفساد(هغه شی کوم چې ژر خرابيږي) سره شوي ده ،ولی چې دغنمو اودشکر په غلاکولو کي بالاجماع دلاس قطع کول شته ،اوهغه کښت چې تراوسه پوري ريبل شوی نه وي دهغه دغلاکولو په صورت کې دلاس قطع کول نشته،ځکه کښت محفوظ مال نه دی،حال دادی چې دلاس دپريکيدلو لپاره داشرط دی چې مال به محفوظ وي.

(۶) قوله واشربة اى لاقطع في سرقة اشربة. يعني په نشه راوستونکو شربتانو کې قطع دلاس نشته ، ځکه چې نشه راوستونکي شيان ځيني مال نه دي اودځينو په ماليت کې اختلاف دی،نودعدم ماليت شبه پيداشوه لهذا دهغه په غلاکولو کې دلاس قطع کول نشته ،همداشان دطنبور(ستار) اودټولوآلات الهو په غلاکولو کې هم دلاس پريکيدل نشته، ځکه کيدلای شي چې دنهي عن المنکر په نيت يې وړی وي، لهذا په غلاکې شبه پيداشوه په دي وجه قطع يد نشته .

(۷) قوله مصحف ولومحلى اى لاقطع في سرقة مصحف ولوكان محلى بحلية قدرنصاب .يعني دقرآن مجيدپه غلاکولو کې هم دلاس پريکيدل نشته ،ځکه دوړلو والادا تأيل کوي چې ما دتلاوت په نيت وړی دی ،که څه هم پرقرآن مجيدباندي دنصاب په اندازه سره ياسپين زر پوښل شوي وي ،ولی چې سره اوسپين زر تابع دي اودتابع اعتبار نشته ،همدا شان دمسجد ددروازې په غلاکولوکې دلاس قطع کول نشته ،ولی چې دمسجددروازه مال غيرمحفوظ دی اوپه غير محفوظ مال کې دلاس قطع کول نشته.

(۸) قوله وصليب ذهب اى لايقطع في صليب ذهب ،دسرويادسپينوزرودصليب په غلاکولو کې هم قطع دلاس نشته ولی چې دصليب ماتول شرعاًجائزدی نوغل تاويل کوي چې مادماتولو په نيت راپورته کړی دی.

(۹) همداشان دشطرنج او نرد په غلاکولو کې هم قطع دلاس نشته ځکه دا له الآتو دلهو څخه دي ،په کوم کې چې قطع نشته ، کمامر ،همداشان که څوک ازاد کوچنی غلاکړي نودغله لاس نه پريکيږي که څه هم پرهغه باندي دنصاب په اندازه زيور وي،ځکه کوچنی مال نه دی اويور دهغه تابع دی لهذا دغله لاس نه پريکيږي.

ف:شطرنج په کسره دشين سره دادسنسکرت لفظ دی کوم چې په اصل کې له چترنګ څخه معرب دی،په هندستان وغيره کې يو مشهوربازی ده، په کومو کې چې په شپږقسمه ګټيوسره بازی کيږي ، کوموته چې

شاه ،فرزين، فيل،اسپ،رخ، او پيدل ويل كيږي ،نردچوسر :يوقسم بازى ده كومه چې اردشيربن بابك ايجادكړي وه.

**لطيفه** :تقدم اثنان الى ابى صمصامة فادعى احدهما على الآخر طنبورا فانكر فقال لمدعى الك بينة؟ فقال لي شاهدان فاحضر رلين شهدا له فقال المدعى عليه سلهما ياسيدى عن صنعتهما ،فاخبر احدهما انه نباذ وقال الآخر انه قواد،فالتفت القاضى الى المدعى عليه وقال ، أتريد على طنبور اعدل من هذين ادفع اليه طنبوره.(المستطرف)

(۱۰) قوله وعبد كبير ودفاتر اى لايقطع فى سرقة عبد كبير ولى سرقة دفاتر،يعني كه كوم څوك بالغ غلام غلا كړي نو په دغه كې دلاس قطع كيدل نشته ، ځكه غلام بالغ دى اوبالغ خوپه خپله قبضه كې وي،لهذا دده غلا كيدل غلا نه بلل كيږي بلكه غصب بلل كيږي ،او دغاصب لاس نه پرې كيږي ،همداشان دهر ډول دفتر(رجسټر) په غلاكولو كې دلاس قطع كيدل نشته ،ځكه د دفتر(رجسټر) په غلاكولو كې مقصود په دفتركې موجود خط وي اوخط خومال نه دى لهذا دغله لاس نه پرې كيږي ،

ف:خلاصه دا چې په اتو(۸) وجهوسره له غله څخه دلاس قطع ساقطيږي ،(۱) مسروق كوم حقير بيكاره شى وي لكه لرګي وانبه وغيره (۲) كوم چې په خپل اصلي حالت كې مباح الاصل پيدا كيږي لكه ماهى مارغه وغيره (۳) هغه شى كوم چې ژرخرابيږي تريوه كاله پوري نه شي پاته كيدلاى لكه ميوه اوژرخرابيدونكي دخوراك شيان (۴) كوم چې محفوظ نه وي لكه كنبت (۵) شرعاً چې دكوم شي ضائع كيدل مباح (روا) وي لكه اشربة او دلهوي الآت(۶) هغه شيان چې په هغوئ له غلاپرته دبل شي تاويل كيدلاشي لكه قرآن مجيد وغيره (۷) چې مسروق شى مال نه وي لكه ازاد كوچنى (۸) هغه شى چې دهغه غلاكيدل غلانه بلل كيږي لكه دبالغ غلام وړل.

(۱۱)بِخِلَافِ الصَّغِيرِ وَدَفَاتِرِ الْحِسَابِ(۱۲)وَكَلْبٍ وَفَهْدٍ وَدُفٍّ وَطَبْلٍ وَبَرْبَطٍ وَمِزْمَارٍ(۱۳)وَبِخِيَانَةٍ(۱۴)وَنَهْبٍ وَاخْتِلَاسٍ(۱۵)وَنَبْشٍ(۱۶)وَمَالِ عَامَّةٍ(۱۷)وَمُشْتَرَكٍ وَمِثْلِ دَيْنِهِ(۱۸)وَبِشَيْءٍ قُطِعَ فِيهِ وَلَمْ يَتَغَيَّرْ

**ترجمة**:په خلاف دنابالغ او دحساب په دفترونو (كتابچو) كې (چې په هغو كې لاس پرې كيږي)،او په سپي او پړانګ اوډهول اوسارنګى اومرلى ،او په خيانت كولو ،اوپه لوټ كولو اوپه مخامخ يوشئ ځغلولو،او په كفن غلاكولو كې ،او دعامو خلكو په مال ،يادمشترك مال كې اودخپل قرض په اندازه ،او د داسې شي په غلاكولو كې چې په هغه كې لاس پرې شوى وي اوهغه متغيرشوى نه وي.

**تشريح**:(۱۱)كه يو چانابالغ غلام غلاكړنو په دي كې قطع يدشته ولى چې دامال دى دخاروى په شان ده لره په خپل ځان قبضه نشته نو پردي دسرقي تعريف صادقيږي لهذا دسارق لاس به پرې كيږي .اوكه چادحساب رجسټر (دكوموچې حسابونه تيرشوي وي )غلاكړل نودده لاس به پرې كيږي ولى ځ په دي كې مقصودتحريرنه دى بلكه ورقي دي نوكه ددي قيمت دلس درهمو په اندازه وونو دغله لاس به پرې كيږي.

(۱۲)قوله وكلب وفهد ودف الخ.داپر هغوشيانو عطف دي په كومو كې چې قطع يد نشته ،يعنى دسپي او پړانګ دغلا كونكى لاس نه پرې كيږي ولى چې ددوى له جنس څخه مباح الاصل پيدا كيږي لهذا په دوئ كې درغبت دكم والى په وجه سره ددوئ په غلاكولو كې دحدزاجرضرورت نشته،او همداشان دف(په يوه

لاس سره دوهلو والاشيانو څخه ديوسازنوم دی )ډهول ،سارنګي ،اودمرلۍ په غلاکولو کې هم قطع يد نشته ولی چې دا آلات دلهو دي په کومو کې چې قطع نشته کمامر.

(۱۳)قوله وبخيانة ای لايقطع بخيانة فی الوديعة .يعنی د خائن او خائنة (خائن هغه دی له کوم سره چې يوشئ دحفاظت لپاره کښيښودل شي اودی په هغه کې خيانت وکړي )لاس نه پريکيږي ولې چې دمودع په لاس کې چې کوم مال دی هغه مال غير محفوظ دی او په غير محفوظ مال کې قطع اليد نشته .

(۱۴)همداشان د منتهب (چې په علانية سره له يو چاڅخه يوشئ په زور ويسي )او مختلس(چې په غفلت سره ديوچاله لاس څخه يو شئ ويسي او وتښتي )لاس هم نه پري کيږي ولی چې دادواړه په علانية سره دا عمل کوي په پټه طريقه سره يې نه کوي لهذا دسرقې تعريف پردوئ نه صادقيږي په دي وجه چې سرقه په پټه طريقه سره وي .

(۱۵)قوله ونبش ای لايقطع بسبب نبش القبور ،يعنی دنباش (دکفن غلاکونکی) لاس به هم نه پري کيږي ﴿لقوله عليه الصلاة والسلام لا قطع على المختفي﴾ (دکفن پر غلاکونکي قطع يد نشته).اوهمداشان دکفن په ملکيت کې شبه ده په دي دول چې دميت لپاره هيڅ ملکيت نشته او دميت دحاجت د مقدم والی په وجه سره دوارث هم ملکيت نشته ولی چې دثبوت سرقه لپاره دمال مملوک والی ضروري دی .

(۱۶)قوله ومال عامة ای لايقطع فی سرقة مال العوام ،يعنی که يو چا دعامو خلکو مال يعنی دبيت المال (داسلامي حکومت خزانه )يو شئ غلاکړ نو دهغه لاس نه پري کيږي ولی چې دا دعامو مسلمانانو مال دی او غل په خپله هم له دوئ څخه دی نو دشبه په وجه سره په دي کې قطع يد نشته .همداشان که چاداسې مال غلاکړ چې په هغه کې خپله دی هم شريک وي نو دده لاس به هم نه پري کيږي ولی چې په دي مال کې دده هم حق دی لهذاپه دي صورت کې هم شبهه ده،اودقرض غوښتونکي له خپل مقروض څخه دقرض په اندازه مال په غلاکولو کې قطع يد نشته ولی چې همدابه ويل کيږي چې ده خپل حق وصول کړی دی .

(۱۷)قوله وبشئ قطع فيه ولم يتغير ای لايقطع بسرقة الشئ قدقطع فيه ولم يتغير ،يعنی که چايوشئ غلاکړ بيا ونيول شوبيادده لاس پري کړای شواومسروق شئ مالک ته بيرته ورکړل شواوتراوسه په ده کې څه تغيرنه ووراغلی چې غله بيادا غلاکړنودوهم ځل پرده قطع نشته ولی چې قطع يد دمقطوع په حق کې دمسروقه مال عصمت ساقط کړاومالک دواپس کولو په وجه سره که څه هم دهغه عصمت بيرته راګرځي ليکن دسقوط شبه پاتي ده اوحدودپه شبهاتوسره ساقطيږي ،البته که مالک ته له واپس کولووروسته په هغه شئ کې تغيرراغلی ومثلادپنبووسپنسي يې غلاکړي ووپه دي کې لاس پري کړای شو او پنبووسپنسي مالک ته بيرته واپس کړای شوبيامالک له هغه څخه جامه جوړه کړه اوس غله داجامه غلاکړه نوپرده دوهم ځل قطع شته ولی چې اوس دابل شئ دی .

(۱۸)وَيُقْطَعُ بِسَرِقَةِ السَّاجِ وَالْقَنَا وَالْآبَنُوسِ وَالصَّنْدَلِ وَالْفُصُوصِ الْخُضْرِ وَالْيَاقُوتِ وَالزَّبَرْجَدِ وَاللُّؤْلُؤِ (۱۹)وَالْأَوَانِي وَالْأَبْوَابِ الْمُتَّخَذَةِ الْخَشَبِ.

**ترجمه** :او لاس به پري کيږي دساګهو (يو قسم لرګی )اونيزي دلرګي اوآبنوس اوصندل اورغون غمی اوياقوت اوزمرودا وملغلري ،اولوښی اودداسې دروازوپه غلاکولو کې چې له لرګي څخه جوړي شوي وي .

**تشريح**:(۱۸)د ساکهواونيزي دلرگي اوآبنوس اوصندل (ديوخوشبولرونكي لرگي نوم دى )،په زرغونوغميانو، ياقوت ،زمرداوملغلروپه غلاكولوكې قطع يدشته ددي شيانودغلاكونكى لاس به پري كيږي ولى چې دامحفوظ اود خلكوپه نزدمحترم مال دى اوپه دارالاسلام كې په خپل اصلي صورت كې مباح نه موندل كيږي .

**ف**:الساج،دسوررنگ والا مضبوط لرگى دى ،آبنوس ،ديو مشهوري درختي نوم دى دكومي چې لرگى سخت ،وزن لرونكى او تور وي ،ياقوت،يوه قيمتي ډبره كومه چې سره ياشنه ياژړه ياسپينه وي ، زمرد دزرغون رنگ والاقيمتي ډبره ده .

(۱۹)قوله والاواني والابواب المتخذة من الخشب اى يقطع بسرقة الاواني والابواب المتخذة من الخشب.يعني داسې لرگى چې د هغه په غلاكولو كې لاس نه پري كيږي كه له هغه څخه لوښي يادروازي جوړي شوي نودهغودغلاكونكى لاس به پري كيږي په دي شرط چې محفوظ وي اودروازه په ديوال كې لگيدلي نه وي ولى چې دالرگى اوس په اموال نفيسه كې شامل شو .

## فَصْلٌ فِي الْحِرْزِ

### دا فصل دمحفوظ ځاى په بيان كې دى

حرز،په لغت كې محفوظ ځاى ته ويل كيږي په كوم كې چې ديوشئ حفاظت كيږي ، او شرعاًهغه ځاى ته ويل كيږي چې په هغه كې چې عادةً د مال حفاظت كيږي ،بيا حرز په دوه قسمه دى يو هغه كوم چې دخپلي معنى په وجه سره حرزوي ،لكه كورونه ،او كوټي ،يادكان ،صندوق،خيمه،وغيره او حرز حقيقة همدا دى ،دوهم دا چې حرز دكوم ساتونكى اوڅارونكى وغيره په ذريعه سره وي مثلاًڅوك په مسجد يالاره كې ناست دى اودهغه په لاس كې مال دى نودامال محرزبه دى اودامعنى حرزدى.

دسرقه په تعريف كې دحرز ذكروشوچې دثبوت سرقه لپاره دمال په حرزكې موجودوالى شرط دى اوس ددي حرزتفصيل بيانوي چې كوم قسم مال په حرزكې شمارل كيږي اوكوم قسم مال په حرزكې نه شمارل كيږي .

(۱) وَمَنْ سَرَقَ مِن ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ منه (۲) لَا بِرَضَاعٍ (۳) وَمِنْ زَوْجَتِهِ وَزَوْجِهَا وَسَيِّدِهِ وَزَوْجِ سَيِّدَتِهِ (۴) وَمُكَاتَبِهِ وَخَتَنِهِ وَصِهْرِهِ (۵) وَمِنْ مَغْنَمٍ (۶) وَحَمَّامٍ وَبَيْتٍ أُذِنَ فِي دُخُولِهِ لَمْ يُقْطَعْ.

**ترجمه**:اوچاچې غلاوكړه له خپل ذى رحم محرم څخه ،نه له رضاعي محرم څخه ،ياله خپلي ښځي څخه ياله خپل خاوند څخه ياله خپل مولى څخه يادمولى له ښځي څخه يادخپلي مالكي له خاوند څخه ،ياله خپل مكاتب څخه ياله خپل زوم څخه ياله خپل خسر څخه ،ياله غنيمت څخه ،ياله حمام څخه ياله داسې كور څخه چې په هغه كې دداخليدلواجازه وركړل شوي نولاس به نه پري كيږي .

**تشريح**:(۱)كه چاله خپل ذى رحم محرم قريب (مثلاً موراوپلار ،لور،لمسى وغيره )څخه يوشئ غلاكړ نو دهغه لاس نه پري كيږي ولى چې دوئ يودبل كورنوته بلااجازي ځي راځي نوددوئ مالونه له يوبل څخه محفوظ نه دي حال داچې دقطع يدلپاره ضروري ده چې محفوظ مال به يې غلاكړى وي .

(٢)قوله لابرضاع ای یقطع اذاکانت المحرمیة بسبب الرضاع .دا له ماقبل نفی څخه نفی ده کوم چې مفید اثبات ده یعنی که دچاله بل چاسره رضاعي محرمیت اوقرابت وي مثلارضاعي پلاريارضاعي ورور وغیره وي نوله دوئ څخه په غلاکولوکې به دده لاس پري کیږي ولی چې ددوئ په خپل منځ کې کوم قرابت نشته اوبغیرله قرابت څخه محرمیت په دي باب کې معتبرنه دی ،بلکه په دي محرمیت کې احترام هم نه وي لکه چې څوک له یوي ښځې سره زناوکړي نودمزنیه موريرده حرامیږي مګرپه دي کې هیڅ احترام نشته ،البته دامام ابویوسف رحمه الله په نزدکه یې له رضاعي مورڅخه یوشئ غلاکړنودده لاس به پري کیږي ولی چې رضاعي مورته هم راځي نوحرز دنه موجودوالی په وجه سره به یې لاس نه پري کیږي.

(٣)قوله ومن زوجته وزوجها ای لایقطع ید من سرق من زوجته او من زوجها .یعنی که له زوجینو څخه یوله هغه بل څخه کوم شئ غلاکړي ،یاغلام له خپل مولی څخه یادمولی له ښځې څخه یاغلام دخپلي مالکي له خاوند څخه کوم شئ غلاکړي نوپه دي ټول صورتونوکې هم دغله لاس نه پري کیږي ولی چې ددوئ په منځ کې ګډژونداودیوبل کورنوته دتګ راتګ اجازت عادةً موجوددی .

(۴)قوله ومکاتبه وختنه ای لایقطع من سرق من مکاتبه او ختنه .یعنی که مولی له خپل مکاتب څخه کوم شئ غلاکړ نو هم دمولی لاس نه پري کیږي ولی چې دمکاتب په کسب کې دمولی حق دی نودامورثِ شبه دی لهذاپه دي کې قطع یدنشته ،همداشان له خپل ختن(له ختن څخه دخپلوټولوذی رحم محرموښځو خاوندان مراددي )څخه په غلاکولوکې قطع یدنشته،اوله خپلواصهارو(له اصهاروڅخه دښځې ټول ذی رحم محرم مراددي)څخه په غلاکولوکې قطع یدنشته ولی چې دوئ په خپل منځ کې یودبل کورونو ته ځي راځي نوددوئ مالونه له یوه بل څخه محفوظ نه دي حال داچې دقطع یدلپاره دمال محفوظ غلاکول شرط دی .

(۵)قوله ومن مغنم ای لایقطع من سرق من مغنم .یعنی که چاله مال غنیمت څخه کوم شئ غلاکړنوهم پرده قطع یدنشته که دغله په دي مال غنیمت کې حصه وي اوکه نه وي ولی په مال غنیمت کې چې ترڅوڅه تغیرنه وي راغلی ترهغه وخت پوري مباح الاصل دی لهذاپه دي کې قطع یدنشته .

(۶)قوله من حمام ای لایقطع من سرق من حمام .یعنی که چاله حمام څخه دخلګودتګ راتګ پروخت کوم شئ غلاکړیایې له داسي کورڅخه کوم شی غلاکړچیرته چې خلګوته دتللواجازه وي نودده لاس به نه پري کیږي ولی چې په حمام کې عادةً اوکورته حقیقةً دتللواجازت دی نوپه حمام اوداسي کورکې دموجودمال په حرز کې خلل دی لهذاپه غلاکونکی باندي دسارق تعریف نه صادقیږي .

(٧)وَمَنْ سَرَقَ مِنَ الْمَسْجِدِ مَتَاعاً وَرَبُّهُ عِنْدَهُ قُطِعَ (٨)لَاْمِنْ سَرَقَ ضَيْفٌ مِمَّنْ أَضَافَهُ (٩)وسَرَقَ شيئاً ولم يخرجه من الدَّارِ لَا (١٠)وَإِنْ أَخرَجَهُ من حُجْرَةٍ إِلَى الدَّارِ اَوْ أَغَارَ مِنْ أَهْلِ الْحُجَرِ عَلَى حُجْرَةٍ اَوْ نَقَبَ فَدَخَلَ وَأَلْقَى شيئاً فِي الطَّرِيقِ ثُمَّ أَخَذَهُ (١١)او حَمَلَهُ على حِمَارٍ فَسَاقَهُ وَأَخرَجَهُ قُطِعَ.

**ترجمه**:اوچاچې له مسجد څخه سامان غلاکړاودهغه مالک له هغه سره موجودوونولاس پري کیږي ،او که میلمه غلاوکړه له هغه کس څخه کوم چې دی میلمه کړی دی ،یایې کوم شئ غلاکړمګرهغه یې له مکان څخه ونه ایستی نولاس نه پري کیږي ،اوکه یې له کوټي څخه دکورطرف ته راویستی یالوټ وکړله کوټووالاوڅخه یوه په کومه کوټه یاپه نقب لګولو سره داخل شواوکوم شئ یې لاري ته وغورځاووبیایې هغه یووړی ،یایې پرخره بارکړاودباندي یې راویستی نولاس پري کیږي.

**تشريح**: (۷)كه چاله مسجد څخه دچامال غلاكړاو دهغه مال مالک دحفاظت لپاره موجودوو نودسارق لاس پري كيږي ولى چې دامال دحافظ په ذريعه سره محفوظ دى اودمحفوظ مال په غلاكولوكې قطع يدشته .

(۸)او كه ميلمه دځپل كوربه له كورڅخه كوم شئ غلاكړ نو دهغه لاس نه پري كيږي ولې چې دكوربه له طرف څخه داذنِ دخول په وجه سره دميلمه په حق كې دامكان حرزنه شوپاتي لهذا په دي كې موجودمال دميلمه په حق كې غيرمحفوظ دى په دي وجه دهغه لاس نه پري كيږي .

(۹)كه چا يو شئ غلاكړ،مگرهغه يې له مكان څخه ونه ايستى نودهغه لاس به نه پري كيږي په دي شرط چې مكان ډيرلوى نه وي ولى چې ټول مكان يوحرزدى نوترڅوچې يې له حرزڅخه ونه باسي داكس من كل الوجوه دمال وړونكى نه شمارل كيږي په دي وجه دده لاس نه پري كيږي .

(۱۰)كه غله دمكان په كوټوكې له يوي كوټي مال راوايستى اوسراى ته يې راوړى نودده لاس پري كيږي ولى چې هركوټه دځپلواوسيدونكوپه اعتبارسره جلاحرزدى نوځرنگه چې ده له حرزڅخه مال ايستلى دى نوداله كورڅخه دكوځي طرف دمال ايستلوپه شان دى لهذاادده لاس به پري كيږي .اوكه په مذكوره كوټوكې له اوسيدونكوڅخه دكومي كوټي والا دنوروكوټووالالوټ كړل څه مال يې غلاكړنو پرده قطع يدواجبه ده په دي شرط چې كورلوى وي ولى چې هره كوټه دځپلواوسيدونكوپه اعتبارسره جلاحرزدى نوداكوردكلي په مرتبه كې دى .

(۱۱)كه سارق په سورى جوړلوسره كورته داخل شواومال يې له كورڅخه دباندي وغورځاوه بيااووتى اومال يې يووړى نودده لاس به پري كيږي ولى چې مال غورځول يوه حيله ده ولى چې له مال سره وتل مشكل وي لهذا امال غورځول اوبياوړل يوفعل شمارل كيږي ،اوهمداشان كه يې پرخره مال باركړبيايې راويستى نوهم به دده لاس پري كيږي ولى چې خرخوده رايستلى وو په دي وجه دخره تگ دده طرف ته منسوب دى .

(۱۲)وَإِن نَاوَلَ آخَرَ مِن خَارِجٍ (۱۳)اَو أَدخَلَ يَدَهُ فِي بَيتٍ وَأَخَذَ (۱۴)اَو طَرَّ صُرَّةً خَارِجَةً مِن كُمٍّ اَو سَرَقَ مِن قِطَارٍ بَعِيرًا اَو حِملًا لَا (۱۵)وَإِن شَقَّ الحِملَ فَأَخَذَ مِنهُ اَو سَرَقَ جُوَالِقًا فِيهِ مَتَاعٌ وَرَبُّهُ يَحفَظُهُ اَو نَائِمٌ عَلَيهِ (۱۶)اَو أَدخَلَ يَدَهُ فِي صُندُوقٍ اَو فِي جَيبِ غَيرِهِ اَو كُمِّهِ فَأَخَذَ المَالَ قُطِعَ .

**ترجمه**:اوكه يې وركړبل ته كوم شئ له كورڅخه دباندي ،يايې كورته په لاس دننه كولوسره راواخيست،يايې هميانى پري كړه كومه چې له لستوڼي څخه دباندي وه يايې غلاكړله قطارڅخه اوښ يادهغه بارنونه به بري كيږي ،اوكه يې بارڅيري كړاوله هغه څخه يې كوم شئ يووړيايې جوال غلاكړپه كوم كې چې سامان وواودهغه مالک دهغه حفاظت كاوو ياپرهغه بيده وو ،يايې لاس دننه كړپه صندوق كې يادچاپه جيب كې ياپه لستوڼي كې اومال يې يووړنولاس به پري كيږي .

**تشريح**: (۱۲)كه غله په سورى كولوسره كورته داخل شواومال يې راوخيست اوبل ته كوم چې له كورڅخه دباندي ولاړدى وركړنوله دي دواړوڅخه ديوه لاس نه پري كيږي ولى چې له اول څخه خواخراج مال نه دى متحقق شوى اوددوهم په حق كې مال محفوظ نه دى لهذاپريوه حدنشته ،له امام ابويوسف رحمه الله څخه روايت دى چې دداخل لاس خوپه هرحال كې پري كيږي اوخارج كه دلاس په دننه كولوسره مال وړى وي نودهغه لاس به هم پري كيږي .

(۱۳)که چادبل چامکان سورى کړاولاس يې دننه کړمال يې راوخيست په خپله داخل نه شونوپرده قطع نشته ولى چې دحضرت على ﷺ قول دى چې دداسي کس لاس به نه پري کيږي ،همداشان په مذکوره صورت کې مال محفوظ نه دى ولى چې دمال حفاظت ختمول په داخليدلوسره دى دلته دخول نه دى محتقق شوى ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزدده لاس پري کيږي ولى چې دمحفوظ مال وړى دى اودقطع يدلپاره شرط دمال محفوظ والى دى .

ف :دطرفينو قول راجح دى لمافى الدّر المختار :(او ادخل يده فى بيت واخذ )..............لم يقطع فى الصحيح (الدّر المختار على هامش ردّالمحتار:۳\۲۲۳)

(۱۴)که سارق داسي هميانى پري کړه چې له لستوڼي ياجامي څه دباندي وه نو دهغه لاس نه پري کيږي ولى چې په داسي صورت کې دهميانى غوټه دباندي وي نوده له باندي څخه غوټه پري کړي ده نوپه حرز کې دننه موجودوالى په وجه سره به دده لاس نه پري کيږي ،همداشان که چاله قطارڅخه اوښ غلاکړيايې پراوښ بارشوي بارغلاکړنودده لاس نه پري کيږي ولى چې په دي صورت کې حرط يعنى حفاظت مقصودى نه دى نوپه حرزکې دشبه په وجه سره لاس نه پري کيږي وجه داده چې داوښانو دکښونکي ياپراوښانو دسپرومقصوددمسافت قطع کول دي يادبارله يوه ځاى څخه بل ځاى ته وړل دي په دي وجه حفاظت مقصودي نه دى .

(۱۵)که غله تړل شوى ګهاټ څيري کړاوله هغه څخه يې مال يووړى يايې جوال (په کوم کې چې غله اچول کيږي) غلاکړچې په هغه کې مال وي اومال دهغه حفاظت کوي ياپرهغه ويده وونولاس به پري کيږي ولى چې په ګهاټ کې له مال ايښودلوڅخه مقصوددمال ساتنه وي لهذاحرزموجودشونوله حرز څخه دمال دغلاکولوپه وجه سره لاس پري کيږي، اوجوال که څه هم غيرمحرزدى ليکن څرنګه چې له هغه سره محافظ موجوددى نودمحافظ په وجه سره جوال هم محفوظ مال دى لهذاپه دي کې قطع يدشته.

(۱۶)که يو چا دصرّاف په صندوق کې يا د چا په جيب يالستوڼي کې خپل لاس دننه کړاومال يې راوايستى نودده لاس به پري کيږي ولى چې ده دحرز په ماتولوسره مال وړى دى اوددي قسم شيانو دحرزماتول په همدي شان سره وي لهذاپه دي کې قطع يدشته .

## فصل فى كيفية القطع واثباته

دافصل دلاس دپري کولو اودهغه داثبات په بيان کې دى

څرنګه چې قطع يدله محفوظ ځاى څخه دمال دغلاکولوحکم دى اودشئ حکم له شئ څخه وروسته وي په دي وجه يې دحرزله بيان څخه وروسته دقطع يد کيفيت بيان کړ.

(۱)تُقطعُ يَمِينُ السَّارِقِ من الزَّنْدِ (۲)وتُحْسَمُ (۳)ورِجلُهُ اليُسرى إن عَادَ (۴)فإنْ سَرَقَ ثالِثًا حُبِسَ حتى يَتُوبَ ولم يُقطَعْ (۵)كمَن سَرَقَ وإبهامُهُ اليُسرى مقطوعةٌ او شَلّاءُ او إصْبَعَانِ منها سِوَاهَا او رِجلُهُ اليُمنى مقطوعةٌ (۶)ولا يَضمَنُ بقَطعِ اليُسرى من أمَرَ بخِلافِهِ (۷)وطَلَبُ المسروقِ منه شَرطُ القَطعِ.

**ترجمه**: پرې كيږي دغله ښى لاس له مړوند څخه ،او داغ به پرې لګول كيږي ،او كيڼه پښه كه دوهم ځل غلا وكړي ،نو كه يې غلا وكړه دريم ځل نو بندي كيږي به تر څو چې توبه وباسي او لاس به يې نه پرې كيږي،لكه چې هغه غلا وكړي او دهغه كيڼه بته ګوته پرې شوي وي ياشله وي يا له يې له دي څخه علاوه دوې ګوتې پرې شوي وي ،او ضامن نه دى دكيڼ په پرې كولو سره كوم چاته چې ددي په خلاف امر شوى وي ،او مطالبه كولو د مسروق منه دقطع يد لپاره شرط دى .

**تشريح**: (۱) دغله راسته لاس له زند (مړوند) (زند دورغوي او څنګلي تر منځ جوړ ته ويل كيږي) څخه پرى كيږي ولې چې حضور ﷺ دغله د لاس له مړوند څخه دپرې كولو حكم كړى وو ،نو دا پر هغو خلګو حجت دى كوم چې صرف دګوتو دپرې كولو قائل دي .

(۲) او وجوبا به دوينو دبندولو لپاره داغ وركول كيږي ﴿لقوله عليه الصلاة والسلام فاقطعوه ثم احسموه﴾ (دسارق لاس پرېكړئ بيا هغه ته داغ وركړئ) ،احسموه،دامر صيغه ده كومه چې مقتضى دوجوب ده . همداشان ددې لپاره هم چې له داغ وركولو بغير دمفضى الى التلف كيدلو ويره ده حال داچې حدزاجر دى متلف نه دى .

(۳) قوله ورجله اليسرى ان عاد اى تقطع رجله اليسرى ان عاد الى السرقة .يعنى كه سارق يو ځل له لاس پرې كيدلو څخه وروسته دوهم ځل بيا غلا وكړه او ونيول شو نو په دې ځل غلا كولو به دده كيڼه پښه له كعب (دپښې اوښدلى په منځ كې جوړ) څخه پرې كيږي ﴿لقوله عليه الصلاة والسلام فإن عاد فاقطعوه﴾ (كه غله دوهم ځل بيا غلا وكړه نو بيا يې قطع كړئ) او پر دې دامت اجماع ده ،او له كعب څخه پرې كول دحضرت عمر ﷺ له فعل څخه ثابت دي .

(۴) كه هغه دريم ځل غلا وكړه نو پر هغه قطع يد نشته بلكه هغه ته به تعزير وركول كيږي او په بندي خانه كې به اچول كيږي تر څو چې توبه وكړي ولې چې حضرت على ﷺ فرمايي ،ماته له الله ﷻ څخه شرم راځي چې زه دهغه يو لاس پرې نه ږدم چې په هغه سره دى خورك وكړي او استنجاء ووهي او يوه پښه پرې نه ږدم چې په هغې دى تګ وكړي ،او ده ﷺ باقى صحابه هم په دې قائل جوړ كړل لهذا پر دې دصحابه كرامو ﷺ اجماع ده .

(۵) قوله كمن سرق وابهامه اليسرى مقطوعة اى لايقطع فى مرة ثالثة كما لايقطع يمين من سرق وابهامه اليسرى مقطوعة . يعنى په دريم ځل كې به دسارق لاس نه پرې كيږي لكه څرنګه چې كه داسي غله غلا وكړه چې دهغه دراسته لاس بته ګوته پرې شوي وي ياشله وي يا يې له بتې ګوتې ماسوادلاس دوې ګوتې پرې شوي وي .يا يې راسته پښه شله يا پرې شوي وي نو هغه ته دقطع يد ورجل سزانه وركول كيږي ولې چې دقطع يد په صورت كې دهغه دنيولو جنس منفعت ختميږي او دقطع رجل په صورت كې دتګ كولو جنس منفعت ختميږي كوم چې معنى هلاكت دى لهذا داحد به پر ده نه جاري كيږي بلكه هغه به بندي كيږي تر څو چې توبه وباسي .

(۶) كه دغله دراسته لاس دپرې كولو حكم وي مګر جلاد كيڼ لاس پرې كړ نو دامام ابو حنيفه ﷫ په نزد پر هغه تاوان نه لازميږي وجه دا ده چې كه څه هم جلاد دده لاس ضائع كړ مګر دلاس له جنس څخه يې له دې لاسه بهتر لاس (يعنى راسته لاس) ده لره پريښود نو دا تلف نه شمارل كيږي او پر جلاد تاوان نه واجبيږي

،دصاحبينو په نزد دعمداً پري كولو په صورت كې جلاد ضامن دى ولى چې ده دحاكم له حكم څخه مخالفت كړى دى.

(۷)دغله دلاس پري كولو لپاره دمسروق منه مطالبه شرط ده ځكه چې دسرقې دظهور لپاره دمسروق منه خصومت شرط دى په دي وجه چې دغيرپرمال جنايت ترهغه وخت پورى نه ښكاره كيږي ترڅوچې مسروق منه خصومت ونه كړي نودسرقې دظهورلپاره دمسروق منه له طرف څخه دعوى ضروري ده ځكه چې دمسروق منه له طرف څخه په ترک دعوى دعدم وجوب قطع شبه پيدا كيږي اودشبه په وجه سره حدساقطيږي.

(۸)وَلَوْ مُودِعًا أَوْ غَاصِبًا أَوْ صَاحِبَ الرِّبَا (۹) وَيُقْطَعُ بِطَلَبِ الْمَالِكِ لَوْ سُرِقَ مِنْهُم (۱۰) لَا بِطَلَبِ الْمَالِكِ أَوِ السَّارِقِ لَوْ سُرِقَ مِنْ سَارِقٍ بَعْدَ الْقَطْعِ (۱۱) وَمَنْ سَرَقَ شَيْئًا وَرَدَّهُ قَبْلَ الْخُصُومَةِ إِلَى مَالِكِهِ (۱۲) أَوْ مَلَكَهُ بَعْدَ الْقَضَاءِ (۱۳) أَوِ ادَّعَى أَنَّهُ مِلْكُهُ (۱۴) أَوْ نَقَصَتْ قِيمَتُهُ مِنَ النِّصَابِ لَمْ يُقْطَعْ.

**ترجمه**:كه څه هم امانت داروي ياغاصب ياسود خوروي ،اولاس پري كيږي دمالک په مطالبه سره كه يې غلا كړى وي له دوئ څخه ،نه دمالک ياغله په مطالبه سره كه يې غلا كړى وي له غله څخه له قطع يد وروسته ،اوچاچې كوم شئ غلا كړ او مالک ته يې بيرته وركړله خصومت څخه وړاندي ،ياغل دهغه مالک شوله قضاء څخه وروسته ،ياپې دعوى وكړه چې دازمامِلک دى ،يادهغه قيمت له نصاب څخه كم شونولاس نه پري كيږي.

**تشريح**:(۸)قوله ولو مودعا اى الخصومة شرط لظهور السرقة ولو كان الخصم مودعا.يعنى كه له چاسره دامانت مال وغله هغه غلا كړ ياله يوبل چاڅخه غصب كړى مال وغله غلاكړيادسودمال وغله غلاكړمثلا چا دپنځودراهمو په عوض كې لس دراهمه واخيستل يادالس دراهمه چاغلاكړل نوپه دي دريوواړه صورتونو كې به دقابض په مطالبه سره دغله لاس پري كيږي داصل مالک مطالبه ضروري نه ده ځكه چې غلاپه خپله قطع يد واجبوي اوغلاقاضى ته له خصومت معتبره (دقابض خصومت )وروسته دګواهانوپه ګواهي سره ثابته شوي ده لهذاقطع يدواجب ده اودقابض خصومت په دي وجه معتبردى چې هغه لره دمسروق مال بيرته وړلوحق حاصل دى.

(۹)اوكه له مذكوره بلاصورتونوڅخه په كوم صورت كې دمال مالک دغله دلاس دپرې كولو مطالبه وكړه نودمالک دملک دقيام په وجه سره دهغه مطالبه معتبره ده لهذادهغه په مطالبه سره به دغله لاس پري كيږي.

(۱۰)كه دغله دلاس پري كيدلوڅخه وروسته بل غله له ده څخه مال غلاكړنواوس به دمالک اومخكنى غله په مطالبه سره ددوهم غله لاس نه پري كيږي ولى چې دامال له قطع يدڅخه وروسته دغله په لاس كې غيرمتقوم دى همداوجه ده چې كه غل هغه هلاک كړي نوپرهغه ضمان نه راځي لهذادغير معصوم والى په وجه سره ددي مال دغلاكونكى لاس نه پري كيږي.

(۱۱)كه غله ديو چامال غلاكړ بيا حاكم ته ترمرافعي وړاندي هغه دامال مالک ته واپس كړنودغله لاس به اوس نه پري كيږي ولى چې دسرقې دظهورلپاره دحاكم په حضوركې خصومت كې شرط دى نوكله چې خصومت نشته نوقطع به واجب نه وي.

(۱۲)قوله او ملكه بعد القضاء اى من سرق شيئا وملكه بعد القضاء بالقطع لم يقطع .يعنی كه دقاضی له طرف څخه دقطع پدفيصلي كيدلووروسته سارق دمال مسروق مالک شومثلامسروق منه سارق ته مال مسروق هبه كړيامسروق منه مال مسروق پرسارق خرڅ كړنودسارق لاس نه پري كيږي ځكه چې په دي صورت كې دمسروق منه له طرف څخه خصومت پاتي نه شوحال داچې دقطع يدپروخت قيام خصومت شرط دی .

(۱۳)قوله او ادعى انه ملكه اى من سرق شيئا وملكه بعد القضاء بالقطع لم يقطع .يعنی كه سارق دعوی وكړه چې دامال (مال مسروقه )زماملک دی نوله ده څخه قطع يدساقطيږي كه څه هم هغه پرخپله دعوی گواهان پيش نه كړای شي ځكه ممكنه ده چې رښتيادي وايي نوله احتمال صدق څخه شبه پيداشوه اوپه شبه سره حدساقطيږي .

(۱۴)قوله او نقصت قيمته اى من سرق شيئا فنقصت قيمته من النصاب من حيث السعر .يعنی كه دقاضی له قضاء څخه وروسته له حدجاري كولووړاندي دمال مسروق قيمت له نصاب (لس درهمه )څخه كم شونودسارق لاس نه پري كيږي ،له امام محمد رحمه الله څخه يوروايت دادی چې لاس به پري كيږي ولی چې دادعين دنقصان په شان دی مثلاچالس دراهمه غلاكړل بيايودرهم ضائع شونوقطع يداوس هم لازمه پاتي كيږي نوپه همدي شان سره دقيمت دكميدلوپه صورت كې هم لاس پري كيږي ،زموږدليل دادی چې دقطع يدلپاره دلس دروهمونصاب پوره والي شرط دی نودلاس ترپري كيدلوپوري ددي نصاب قيامه ضروري ده ولی چې حدجاري كول هم له حكم قضاء څخه دي .

ف :دشيخينو رحمهما الله،قول راجع دی لمافی الدرالمختار (او نقصت قيمته من النصاب )بنقصان السعر فی بلد الخصومة (لم يقطع) قال العلامة ابن عابدين، (قوله او نقصت قيمته )اى بعد القضاء لان كمال النصاب لما كان شرطايشترط قيامه عندالامضاء (الدرالمختار مع الشامية:۳\۲۳۰)

(۵)وَلَوْ أَقَرَّ اثْنَانِ بِسَرِقَةٍ ثُمَّ قَالَ أَحَدُهُمَا هُوَ مَالِي لَمْ يُقْطَعَا(۱۶)وَلَوْ سَرَقَا وَغَابَ أَحَدُهُمَا وَشَهِدَ عَلَى سَرِقَتِهِمَا قُطِعَ الْآخَرُ (۱۷)وَلَوْ أَقَرَّ عَبْدٌ بِسَرِقَةٍ قُطِعَ(۱۸)وَتُرَدُّ السَّرِقَةُ إلَى الْمَسْرُوقِ مِنْهُ

**ترجمه**:اوكه اقراروكړدوغلودغلا بيايوه وويل چې دازمامال دی نوددواړولاس نه پري كيږي ،اوكه دواړوغلاوكړه بيايوغائب شواودووگوهانوددوئ پرغلاگواهي وركړه نودهغه بل لاس به پري كيږي ،اوكه اقراروكړغلام دغلانولاس به يې پري كيږي اوردېږي په مسرقه شئ مسروق منه ته .

**تشريح**:(۱۵)كه دووكسانوديوشئ دغلاكولواقراروكړبيا له دي دواړوڅخه يوه وويل چې دازماملک دی ،نوددواړولاس به نه پري كيږي ولی چې سرقه ددواړوله اقرارعلى الشركة څخه ثابته شوي وه بياكوم يوه چې دملک دعوی وكړه دهغه په حق كې حدباطل شونوله دي څخه دهغه بل په حق كې هم شبهه پيداكيږي لهذا له هغه بل څخه هم حدساقطيږي .

(۱۶)كه دووكسانويوشئ غلاكړبياي،غائب شواودووگواهانودهغوئ دواړوپرغلاگواهي وركړه نودحاضرغله لاس به پري كيږي داامام ابوحنيفه رحمه الله اخرنی قول دی ،دامام صاحب اولنی قول دادی چې دحاضرلاس به نه پري كيږي ولی چې يوغل غائب دی كه هغه حاضروای كيدای شي چې هغه دكومي شبه دعوی كړی وای په كومه سره چې به حدساقط شوی وای لهذادحاضرغله لاس به هم نه پري كيږي ،بياامام

ابو حنیفه رحمه الله له خپل قول څخه په رجوع کولو داقول اختیار کړچې دحاضرلاس به پري کیږي ولی چې کوم چې غائب دی پر هغه سرقه نه ثابتیږي لهذا هغه کالعدم دی او دمعدوم له ذات څخه کومه شبه نه پیدا کیږي صرف دشبهه وهم وي چې دهغه اعتبار نشته لهذا دحاضرلاس به پري کیږي .

(۱۷)که کوم غلام دغلاکولو اقرار وکړ نو دشیخینو په نزد دهغه لاس پري کیږي ولی چې دغلام اقرار کول دحدودو په باره کې دآدمیت په اعتبار سره دی دمالیت په اعتبار سره نه دی او په غلام کې آدمیت متحقق دی لهذا دهغه لاس به پري کیږي ،همداشان دهغه په اقرار کې پر هغه هیڅ تهمت نشته ولې چې په دي اقرار کې تر مولی دده ضرر دیر دی او داسې اقرار پربل چاهم مقبول وي .

(۱۸)او که غلاشوی مال موجود وی نو مسروق منه ته به واپس کیږي ولی کله چې دغلام اقرار بالحد صحیح شو یعنی قطع ید ثابته شوه او قطع ید بحکم شرع دي خبري ته مستلزم ده چې مال دمقرله دی ولی چې که مال دده مولی ته ثابت شي نو بیا پر ده دقطع ید حکم صحیح نه دی .

(۹)لایجتمع قطع وضمان(۲۰)وترد العین لو قائما(۲۱)ولو قطع لبعض السرقات لایضمن شیئا(۲۲)ولو شق ماسرق في الدار ثم أخرجه قطع(۲۳)ولو سرق شاة فذبحها ثم أخرجها لا

**ترجمه**:او نه جمع کیږي قطع ید او ضمان، او واپس کیږي به عین شئ که په خپل حال پاتي وو ،او که لاس پري کړای شو دځو غلاګانو په بدله کې نو ضامن نه دی دبل کوم شئ ،او که یې څیري کړ مسروقه مال په کور کې بیایې دباندي وایستی نو لاس پري کیږي ،او که یې اوه غلا کړه او هغه یې ذبح کړه بیایې هغه له کور څخه وایستله نو نه پري کیږي.

**تشریح**:(۱۹)قطع ید او دمال ضمان دواړه یوځای نه شي سره جمع کیدای یعنی داسي نه شي کیدای چې دغله لاس دي هم پري شي او له هغه څخه دي دمال تاوان هم یوړل شي ولی چې په حدیث شریف کې دي" لاغرم علی السارق بعدما قطعت یمینه"(یعنی چې کله دسارق لاس پریشي نو بیا پر هغه هیڅ تاوان نشته ).

(۲۰)البته که دسارق لاس پري شو او غلاشوی مال اوس هم دسارق په لاس کې موجود وو نو هغه به بیرته خپل مالک ته واپس کیږي ولی چې تر اوسه دمالک ملک پر هغه مال برقرار دی ،او که غلاشوی مال په کوم طریقه سره تلف شوی وي یا تلف کړل شوی وي نو غل ضامن به ضامن نه وي ولی چې قطع او ضمان زمونږ په نزد نه شي سره جمع کیدلای لماروینا .

(۲۱)که چاډیري غلاوي کړي وي بیاله مسروق منهم څخه یوه پر هغه دعوی وکړه او غلایې ثابته کړه چې دهغې په عوض دهغه لاس پري شو نوله باقي غلاوو څخه دیوي تاوان هم اوس پرده لازم نه دی بلکه دټولوغلاووبدله همدایوقطع یددی ولی چې قطع یدشرعی حددی اوپه حدودوکې تداخل کیږي لهذا دټولو له طرف څخه دایوه سزاکافي ده .

(۲۲)که چایوشی مثلاجامه وغیره غلاکړه او هلته په کور کې یې څیري کړه بیایې دباندي راوایستی نو دطرفینو په نزد دده لاس پري کیږي په دي شرط چې په څیري کولو سره هغه بالکل بیکاره شوي نه وي یعنی اوس هم دهغې قیمت لس درهمه یاله دي څخه زیات وي ،حال داچې دامام ابویوسف رحمه الله څخه یو روایت دادی چې دده لاس نه پري کیږي ولی چې دغله په دي دملک سبب پیداشویعنی دپري کولو په وجه سره

پر غله دي قيمت واجب شو او د جامي په خپله مالک شو لهذا دده لاس به نه پري کيږي ،دطرفينو دليل دا دی چې ځيري کول دملک شرعي سبب نه دی بلکه دتاوان سبب دی بياده لره خود ملک ثبوت دضرورت پر اساس دی هغه دا چې تر څو شئ او دهغه تاوان ديوه کس په ملک کې سره جمع نه شي نو په دي شان ملک کوم چې موجب ضمان وي په حد سرقه کې شبهه نه پيدا کوي لهذا قطع يد واجب ده .

(۲۳)که کوم کس او ه غلا کړه هغه يې هلته په کور کې ذبح کړه بيايې دباندي راويستله نو دهغه لاس به نه پري کيږي ولی چې له ذبح څخه وراندي يې له کور څخه نه ده ايستلي په دي وجه داترا وسه غلا نه ده له ذبح کولو او داوي له غوښې ګرځيدلو وروسته غلا مکمله شوه اوس ظاهر ده چې ده غوښه غلا کړي ده او په غوښه غلا کولو کې قطع يد نشته .

(۲۴)وَلَوْ صَنَعَ الْمَسْرُوقَ دَرَاهِمَ أَوْ دَنَانِيرَ قُطِعَ وَرُدَّهَا(۲۵)وَلَوْ صَبَغَهُ أَحْمَرَ قُطِعَ لَا يُرَدُّ وَلَا يَضْمَنُ(۲۶)وَلَوْ أَسْوَدَ يُرَدُّ.

**ترجمه**:او که يې جوړ کړل له مسروق مال څخه دراهم يا دنانير نو لاس پري کيږي او هغه به واپس کيږي . او که يې جامي ته سور رنګ ورکړ او لاس پري شو نو نه به واپس کيږي او نه به ضمان ورکوي .او که يې تور رنګ ورکړ نو جامه په واپس کوي .

**تشريح**: (۲۴)که چادو مره اندازه سره او سپين زر غلا کړل چې په هغو کې قطع يد واجب ده بيا هغه له هغو څخه دنانير جوړ کړل يا يې دراهم جوړ کړل نو په دي که به دهغه لاس پري کيږي او ددراهم او دنانيرو به مسروق منه ته واپس کيږي دا دامام ابو حنيفه رحمه الله قول دی ،دصاحبينو په نزد به دراهم او دنانير مسروق منه ته نه واپس کوي ولی چې غله په دراهمو کې داسي تصرف کړی دی کوم چې قيمتی دی لهذا له دي سره دغله دملک دمخلوط کيدلو په وجه سره به هغه نه واپس کوي ،دا امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دغله دا تصرف څرنګه چې قيمت نه لري لهذا عين مسروق باقی دی باقی هغو لره نوی نوم او په هغو کې تصرف له هغو سره لازم نه دی بلکه په معمولی تغير سره دسابقه حال طرف ته بيرته راګرځيدلی شي لهذا مالک ته واپس کول ضروري دي .بيا په وجوب قطع کې خود امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد هيڅ اشکال نشته ولی چې غل ددراهمو مالک نه دی ګرځيدلی هو دصاحبينو دقول مطابق به قطع يد واجب نه وي ولی چې غل دمال مسروق مالک ګرځيدلی دی او دملک په وجه سره قطع يد ساقطيږي .

**ف**:دامام ابو حنيفه رحمه الله قول راجح دی .المقال الشيخ عبد الحكيم الشهيد: والراجح عند اكثر المشائخ قوله كما هو الظاهر من صنعهم في الدلائل وهو ظاهر الرواية من الامام وهو اختار المتون والشروح وكذا جزم به غير واحد من كتب الفتاوى بالاقتصار وان لم يصرحوا بالترجيح: والله اعلم بالحقيقة والصواب (هامش الهداية: ۲\۵۳۳)

(۲۵)او که غله مثلا سپينه جامه غلا کړه هغي ته يې سور رنګ ورکړ او په جامه غلا کولو دهغ لاس پري شو نو دشيخينو په نزد که جامه په موجوده وه نو هغه به واپس نه ورکوي او که جامه هلاکه شوي وي نو دهغې دقيمت ضامن هم نه دی ،حال دا چې دامام محمد رحمه الله په نزد به جامه له غله څخه بيرته ورل کيږي او د رنګ په وجه سره چې په هغې کې کوم اضافه شوي ده هغه به سارق ته ورکول کيږي ولی چې اصل مال مسروق موجود دی رنګ خو دهغه تابع دی لهذا داصل په اعتبار کولو سره به بيرته واپس کيږي ،دشيخينو دليل دا دی چې دغله رنګ په جامه کې صورة او معنی قائم دی حال دا چې دجامي دمالک حق صورة قائم دی معنی نه

شته همداوجه ده چې كه له غله څخه جامه هلاكه شوه ياده هلاكه كړه نوضامن نه دى نوغله دترجيح ډيرحقداردى لهذاپرغله نه جامه واپس كول واجب ده اونه ضمان واجب دى .القول الراجح هوقول الشيخين لان على قولهما المتون والشروح.

(۲۶)قوله ولواسود يرد اى لو صبغ السارق الثوب اسود يرد .يعنى كه سارق جامې ته توررنګ وركړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدبه له غله څخه جامه ورل كيږي ،اودامام ابويوسف رحمه الله په نزدنه ورل كيږي ولى چې دامام ابويوسف رحمه الله په نزدتوررنګ اوسوررنګ دواړه برابردي لهذاكوم حكم چې دسره رنګ دى هغه دتوررنګ هم دى ،دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادى چې توررنګ اوسوررنګ سره برابرنه دي بلكه توررنګ په جامې كې عيب دى اودعيب په وجه سره دمالک حق نه منقطع كيږي ،دځينوعلماء رأيه داده چې دادزماني اختلاف دى ولى چې دامام صاحب په زمانه كې دبنواميه په سلطنت كې دسره رنګ قدروواوتوررنګ عيب شمارل كيدواودصاحبينوپه زمانه كې دعباسيه په سلطنت كې دتوررنګ قدرهم شروع شو لهذاعيب نه شمارل كيدو.

## بَابُ قَطْعِ الطَّرِيقِ

### داباب دلارشكولو په بيان كې دى

غلا سرقه صغرى ده اولاره شكول سرقه كبرى ده مصنف رحمه الله چې دسرقه صغرى له بيان څخه فارغ شو نو دسرقه كبرى په بيان يې شروع وكړه ،دسرقه صغرى دتقديم وجه داده چې هغه كثير الوقوع ده لهذا هغه احق با لتقديم ده، لاره شكول سرقه كبرى په دي وجه ده چې دهغې ضرر ډيرزيات دى په همدي وجه سره دهغې سزاهم شديده ده .

(۱) أُخِذَ قَاصِدُ قَطْعِ الطَّرِيقِ قَبْلَهُ حُبِسَ حَتَّى يَتُوبَ (۲) وَإِنْ أَخَذَ مَالًا مَعْصُومًا قُطِعَ يَدُهُ وَرِجْلُهُ مِنْ خِلَافٍ (۳) وَإِنْ قَتَلَ قُتِلَ حَدًّا وَإِنْ عَفَا الْوَلِيُّ (۴) وَإِنْ قَتَلَ وَأَخَذَ قُطِعَ وَقُتِلَ وَصُلِبَ أَوْ قُتِلَ أَوْ صُلِبَ (۵) وَيُصْلَبُ حَيًّا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَيُبْعَجُ بَطْنُهُ بِرُمْحٍ حَتَّى يَمُوتَ (۶) وَلَمْ يَضْمَنْ مَا أَخَذَ (۷) وَغَيْرُ الْمُبَاشِرِ كَالْمُبَاشِرِ (۸) وَالْعَصَا وَالْحَجَرُ كَالسَّيْفِ

ترجمه: ونيول شول دلاري شكولو قصد كونكي له لاري شكولو څخه وړاندي نوهغه به بندي كړاى شي ترڅوچې توبه وكړي،اوكه هغه يووړى مال معصوم نوپري كيږي به دهغه لاس اوپښه سرچپه ،اوكه يې څوک قتل كړنوقتل كيږي به كه څه هم دمقتول ولى هغه معاف كړي ،اوكه يې څوک قتل كړاومال يې هم يووړنولاس به پري كيږي اوقتل كيږي به اوراودي ځړول شي يادي صرف قتل كړاى شي يادصرف راوځړول شي ،اوژوندى دي پرداررا وځړول شي تردري ورځوپوري اوڅيري دي كړي دهغه ګيډه په نيزه سره ترڅوچې مړشي ،اوضامن نه دى دهغه مال كوم چې هغه وړى وي، اوغيرمرتكب دمرتكب په شان دى،اولاټى اوډبره دتوري په شان دي.

تشريح:(۱)كه دخلكويوجماعت كوم چې دخلكودلاري په بندولوقادروي دلاري شكولوپه قصدسره راووځي ياصرف يوقوى كس كوم چې دخلكودلاري په بندلوقادروي دلارشكولوپه نيت راووځي بياله دي څخه وړاندي چې هغه دڅامال ويسي ياڅوک قتل كړي ونيول شي نوامام المسلمين دي هغوئ بنديان كړي ،دلارشكونكوپه باره كې چې كوم ايت نازل شوى دى په هغه كې له ﴿او ينفوا من الارض﴾(يا دي له ځمكي څخه

نفی کړای شي )ځنځه همدا مراد دی ،له ځمکي ځنځه له نفی کولو ځنځه مرادبند دی ، او تر ځو چي توبه ونه کړي هغوئ دي په بندي خانه کې وساتي ،له توبې ځنځه مراد په ژبه سره توبه نه بلکه مرګ یادصالحینو دښو ځرګندیدل دي .

(۲)او که دي لارشکونکو دلاري په شکولو سره دکوم مسلمان یاذمی مال واخیست نو که دامال دومره اندازه وي چي که هغه پردي جماعت تقسیم کړای شي نو هريوه ته لس درهمه یاله دي ځنځه زیات رسیدل یاداسي شئ ووچي دهغه قیمت دومره مقدار وي نو دهغوئ لاس او پښې به سرچپه ورپري کيږي یعنی راسته لاس او چپه پښه دي ورپري کړي لقوله تعالی ﴿او تقطع ایدیهم وارجلهم من خلاف﴾ یعنی یا دي دهغوئ لاس او پښې له مخالف جانب ځنځه پري کړای شي ) .

(۳)او که دي لارشکونکو صرف څوک قتل کړی وي دچامال يې نه وي وړی نو امام به هغوئ حداً قتل کړي داقتل قصاص نه دی همدا وجه ده چي که دمقتولينو اولیاء هغوئ معاف کړی نو دامعافي معتبره نه ده بلکه هغوئ به حداً قتل کيږي ولی چي داحد محض د الله تعالی حق دی دبندګانو دمعافولو په دي کې هيڅ اثر نشته .

(۴)او که لارشکونکو څوک قتل کړی هم وو او مال يې هم وړی وو نو امام المسلمین ته دهغوئ په باره کې اختیار دی که يې خوښه وي نو دهغوئ راسته لاس او چپه پښه دي ورپري کړي او قتل دي کړي يا دي پردار وځړوي او که يې خوښه وي نو صرف دي هغوئ قتل کړي او که يې خوښه وي نو هغوئ دي پردار وځړوي لقوله تعالی ﴿إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا ان يقتلوا او يصلبوا او تقطع ايديهم وارجلهم من خلاف﴾ (کوم خلګ چي له الله ﷻ سره او دهغه له رسول ﷺ سره جنګ کوي او په ملک کې دفساد خپرولو کوشش کوي دهغوئ همدا سزا داده چي قتل دي کړای شي یا دي پردار وځړول شي یا دي دهغوئ لاس او پښې له مخالف طرف ځنځه پري کړای شي ) .

(۵)کوم لارشکونکی چي پردار ځړوي هغه دي ژوندی پردار وځړول شي او په نیزه سره دي دهغه نس سوری کړای شي تر ځو چي هغه مړشي ولی چي دا ابلغ فی الزجر ده ،پردار له ځړلو وروسته تر دريو ورځو پوري هغه زجراً پردار ځړیدلی پریښودل کیدای شي زیات نه ولی چي له دي ځنځه وروسته هغه خرابیږي او له بدبويي ځنځه يې خلګو ته ضرر رسيږي .

(۶)که پر لارشکونکي حد جاري کړای شونو له مسروق منهم ځنځه اخیستل شوی مال که له هغه ځنځه تلف شوی وونو دهغه تاوان پرهغه واجب نه دی یعني دهغه له ترکي ځنځه به دامال نه اخیستل کيږي لارشکول پر غلا قیاس دي کما مر .

(۷)غیر مباشر هم دمباشر په شان دی یعنی که له لارشکونکو ځنځه دقتل فعل صرف یوه کړی وي نو هم به حد پر ټولو جاري کيږي ولی چي باقی دهغه معاونین دي .

(۸)په لرګي او ډبره سره قتل کول داسې دی لکه په توره سره قتل کول یعنی لارشکونکو که یو څوک په لرګي یا ډبره سره قتل کړنو پر هغه به حد جاري کيږي لکه څرنګه چي په توره سره دقتل کولو په صورت کې

حد پر جاري کیږي ولی چې سزا په لار شکولو ده اولار شکونه په لاري دتګ کونکوپه لاره شکولوسره متحقق کیږي خواه که کومه آله هم استعمال کړای شي .

(۹) وَإِنْ أَخَذَ مَالًا وَجَرَحَ قُطِعَ وَبَطَلَ الْجُرْحُ (۱۰) وَإِنْ جَرَحَ فَقَطْ أَوْ قَتَلَ فَتَابَ (۱۱) أَوْ كَانَ بَعْضُ الْقُطَّاعِ غَيْرَ مُكَلَّفٍ أَوْ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنَ الْمَقْطُوعِ عَلَيْهِ (۱۲) أَوْ قَطَعَ بَعْضُ الْقَافِلَةِ عَلَى الْبَعْضِ (۱۳) أَوْ قَطَعَ الطَّرِيقَ لَيْلًا أَوْ نَهَارًا بِمِصْرٍ أَوْ بَيْنَ مِصْرَيْنِ لَمْ يُحَدَّ (۱۴) فَأَقَادَ الْوَلِيُّ أَوْ عَفَا (۱۵) وَمَنْ خَنَقَ فِي الْمِصْرِ غَيْرَ مَرَّةٍ قُتِلَ بِهِ.

**ترجمه:** او که هغه مال واخیستی او زخمي یې کړنو دهغه لاس او پښه به پري کیږي او باطلیږي دزخم قصاص ، او که یې صرف زخمي کړیایې قتل کړیایې توبه وکړه ، یاځیني لارشکونکي غیرمکلف وي یادمقطوع علیه ذی رحم محرم وي، یاډاکه واچوي بعض دقافلي والاپربعضونورو ،یایې لاروشکوله په شپه کې یاپه ورځ کې په ښارکې یاددوښارونوپه منځ کې نوحدبه نه جاري کیږي ،نوولی دي قصاص واخلي یادي معاف کړي ،اوچاچې ترغاړه نیول وکړل څوځله په ښارکې نوهغه به قتل کیږي دهغه په بدله کې .

**تشریح:** (۹) که لارشکونکی له یوچاڅخه مال واخیست اوخمي یې کړنودهغه راسته لاس اوچپه پښه به پري کیږي اودزخم عوض باطل شویعنی دزخمي کیدلوعوض به له هغه څخه نه اخیستل کیږي ولی چې کله دالله تعالی دحق پرډول حدواجب شونوداطراف نفس عصمت ساقط شولکه څرنګه چې دمال عصمت ساقطیږي کمامر.

(۱۰) قوله وان جرح فقط (معطوف علیه) او تربین مصرین ، پوري ټول معطوفاتو سره په یوځای کیدلوشرط دی اولم یحدیې جزاء ده .یعنی که لارشکونکی صرف څوک زخمي کړنه یې مال وړی دی اونه یې څوک قتل کړی دی یایې څوک قتل کړیایې له ګرفتاري څخه وړاندي له لارشکولوڅخه توبه وکړه نودلارشکولوحدله هغه څخه ساقطیږي ولی چې له لارشکولوڅخه وروسته په توبه کولوسره دلارشکولوحدساقطیږي.

(۱۱) که په لارشکونکوکې کوم یونابالغ یالیونی یاکوم لارشکونکی له هغوئ څخه (پرکوموچې ډاکه اچول شوي ده) دکوم یوه ذی رحم محرم وونوپرهغه حدنشته اوله باقی لارشکونکوڅخه هم حدساقطیږي ولی چې لارشکونه یوجنایت دی کوم چې په ټولوپوري قائم دی نوکله چې له هغوئ څخه دځینوفعل دصغریاجنون یاقرابت په وجه سره دحدموجب نه شونودباقی پاتي شویوفعل بعض علت شولهذاپرهغه حکم (یعنی حد) نه مرتب کیږي .

(۱۲) که په قافله کې ملګرو بعضوپربعضو ډاکه ووهله نو پرډاکوګانوحدواجب نه دی ځکه حرزیو دی نو ټوله قافله دیوه کورپه شان ده نو له حرزڅخه دنه ایستلو په وجه سره حد نه واجبیږي .

(۱۳) که ډاکوګانو په شپه یاورځ کې ډاکه ووهله یایې ددووښارونوپه منځ کې ډاکه ووهله نواستحساناً دوئ لارشکونکي نه شمارل کیږي که څه هم قیاس مقتضی دی چې لارشکونکي شمارشي اوحدپري جاري شي ولی چې لارشکونه متحققه شوه مګراستحساناً دوئ لارشکونکي نه شمارل کیږي ولی چې لارشکونه دمسافرولارشکولو ته ویل کیږي اوداپه ښاریاښارته نژدي نه شي کیدای ولی چې په

ښارو غيره کې دسلطان ياخلکو له طرف څخه مقطوع عليهم ته کومک رسيدلی شي په دې وجه ډاکولاره نه شي بندولی لهذا لارشکونه متحققه نه شوه .

(۱۴)په مذکوره صورتونو کې څرنګه چې حق عبد نه ساقطيږي لهذا دمقتول وارث ته اوس دا اختيار دی که يې خوښه وي نوپه کوموصورتونوکې چې قصاص دی په هغوصورتونو کې دي له هغه څخه قصاص واخلي اوپه کوموصورتونوکې چې قصاص نشته په هغوکې دي تاوان واخلي اوکه يې خوښه وي نومعاف دي کړي ولی چې له لارشکولو وروسته په توبه کولو سره دلارشکولو حدله هغه څخه ساقطيږي مګردبنده حق څرنګه چې په توبه سره نه ساقطيږي لهذا بنده ته دخپل حق دحصول کولو حق شته.

(۱۵)که کوم کس په ښارکې څوځله په خپه کولو(ترغاړه نيولو)سره انسانان مړه کړي وي نوهغه به دهغوپه عوض کې سياسة قتل کيږي ولی چې داپه ملک فساد خپرونکی دی لهذا صرف ديت کافی نه دی بلکه خلک دهغه له شر څخه دخلاصولو لپاره به هغه قتل کيږي اوکه هغه يوځل څوک په خپه سره قتل کړنوپه دې صورت کې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دهغه ديت دقاتل پرعاقله واجب دی ،دصاحبينوپه نزد به له هغه څخه قصاص اخيستل کيږي.

ف:دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دی ،لمافی الهندية :من خنق رجلا حتی قتله فالدية علی عاقلته عند ابی حنيفة رحمه الله (هنديه:۲\۱۸۸).وفی البحر الرائق:لانه لو خنق مرة واحدة فلاقتل عندالامام والماتجب الدية علی عاقلة(البحر الرائق:۵\۶۹).وقال ابراهيم بن محمد الحلبی رحمه الله :وعنه (عن ابی حنيفة رحمه الله )المايجب (القصاص)اذاجرح وهوالاصح وعلی هذاالضرب بسنجات الميزان وكذاالخلاف فی كل مثقل وفی التغريق والخنق(ان كان مرةواحدة)يعنی لايقتص عندابی حنيفة رحمه الله خلافالهما(مجمع الانهر:۳\۴۰۶)

## كِتَابُ السِّيَرِ والجهاد

### داکتاب دسير او جهاد په بيان کې دی

سيربکسرالسين وفتح الباء دسيرة جمع ده لغة طريقه او دژوند طرز(ډول) ته ويل کيږي که خير وي اوکه شروي ،او په شريعت کې هغې طريقې ته ويل کيږي کومه چې نبی کريم ﷺ په غزواتو کې اختيار کړې ده .او جهاد لغة د جنګ او مقابله کولوپه معنی دی او دشريعت په اصطلاح کې د اعلاء کلمة الله اود دين اسلام د نصرت لپاره خپل طاقت استعمالولو اودالله ﷻ په لاره کې مشقت اوتکليف ګاللو ته ويل کيږي .له ماقبل سره يې مناسبت دادی چې د حدودو او جهاد دواړو مقصد دالله ﷻ له بندګانو څخه فساد دفع کول دي ،بيا دحدود تعلق له مسلمانانو سره دی او دجهاد تعلق له کفاروسره دی په د يوجه يې حدود له جهاد څخه وړاندې ذکرکړل .

**الحكمة** :الجهاد فی الاسلام هو قتال من يسعون فی الارض فسادا لتقويض دعائم الأمن والقلاق راحة الناس وهم آمنون فی ديارهم او الذين يثيرون الفتن من مكامنها اما بالحاد فی الدين وخروج عن الجماعة وشق عصاالطاعة اوالذين يريدون اطفاءنورالله ويناوئن المسلمين العداء ويخرجولهم من ديارهم وينقضون العهود ويخفرون بالذمم ،فالجهاد الذی هو لدفع الأذی والمكروه ورفع المظالم والذود عن المحارم، (حكمة التشريع)

(۱)الجِهادُ فَرْضُ كِفَايَةٍ اِبْتِداءً اِنْ قامَ بِهِ بَعْضٌ سَقَطَ عَنِ الكُلِّ (۲)وَاِلَّا اَثِمُوا بِتَرْكِهِ (۳)وَلَا يَجِبُ عَلَى صَبِيٍّ وَامْرَأَةٍ وَعَبْدٍ وَأَعْمَى وَمُقْعَدٍ وَأَقْطَعَ (۴)وَفَرْضُ عَيْنٍ اِنْ هَجَمَ العَدُوُّ فَتَخْرُجُ المَرْأَةُ وَالعَبْدُ بِلَا اِذْنِ زَوْجِهَا وَسَيِّدِهِ (۵)وَكُرِهَ الجُعْلُ اِنْ وُجِدَ فَيْءٌ وَاِلَّا لَا.

**ترجمه**: جهاد ابتداء فرض کفایه دی نو که وریدل د هغه لپاره څه خلک نو ساقطیږي له پاتي ټولو کسانو څخه، که نه ګنهګار یږي د ترک فرض په وجه سره، او واجب نه دی پر نابالغ او ښځي، او غلام او ړانده او شلی او په لاس او پښي پري شوي باندي، او فرض عین دی که دښمن حمله وکړي نو وځي دي ښځه او غلام بي له اجازي د خاوند او مولی، او مکروه ده مزدوري که په بیت المال کې مال فئ موجود وي که نه نو نه ده.

**تشریح**: (۱) جهاد ابتداء فرض کفایه دی که یو څو کسانو کاوه نو له باقي ټول امّت څخه ساقطیږي، فرض کفایه په د ي وجه دی چې جهاد بنفسه نه دی فرض شوی ولی چې بنفسه جهاد خو افساد دی بلکه د اعزاز دین او له خلګو څخه د شرک او فساد د فتني د دفع کولو لپاره فرض شوی دی او کوم چې داسي وي هغه فرض کفایې وي لهذا ځینو کسانو په جاري ساتلو سره د حصول مقصود په وجه د باقي امت له ذمه څخه فرضیت ساقطیږي لکه د جنازي لمونځ او رد سلام وغیره. له ابتداءً فرض والی څخه مراد اقدامي جنګ دی یعنی که د جنګ پیل د کفار وله طرف څخه نه وي نو بیا به هم مسلمانان په حمله کولو سره د دوئ قوت ماتوي لقوله تعالی ﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتّٰی لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾. همداشان په جنګ بدر کې حضور ﷺ په خپله په ړاندي کیدلو سره د قریښو په تجارتي قافله حمله کول غوښتل، نو د ادشریعت له طرف څخه د اقدامي جهاد اجازت دی.

(۲) قوله والآثموا بترکه ای وان لم یقم به البعض الموابترکه. یعني که د مسلمانانو څخه یو ډلې هم جهاد جاري ونه ساتو نو ټول مکلف امّت د جهاد په ترک کولو سره ګناه ګاریږي لترکهم فرضاعلیهم.

(۳) یعني پر نابالغ جهاد فرض نه دی ولی چې نابالغ مکلف نه دی، او پر غلام او وجه باندي هم جهاد فرض نه دی ولې چې جهاد له حقوق الله څخه دی له کوم څخه چې د غلام د مولی حق او د ښځې د خاوند حق مقدم دی، همداشان پر ړانده، ګوډ، او پر هغه کس چې لاسونه یې پرېشوي وي هم جهاد فرض نه دی ولی چې داکسان عاجز دي او تکلیف د طاقت په اندازه وي، په اوسنی زمانه کې چې کوم کسان فوځي تربیت نه لري هغه هم په دي زمره (ټولی) کې دي. (قاموس الفقه: ۱۶۴/۲)

**ف**: په فتاوی حقانیه کې دي: چې د افغانستان جهاد د نفیر عام کیدلو په وجه سره فرض عین دی بیا هم پر کمزورو او وس نه لرونکو کسانو باندي د اذمه واری عائده نه ده بلکه د اذمه واري د اهل اقتدار او سربراهانو (د حکومت د چارواکو) ده په دي وجه که څه هم په عوام الناس (عامو خلګو) د اجهاد فرض نه دی لیکن پر دوئ د مجاهدینو کومک او خواخوږي کول ضروري دهولماقال العلامة الکاساني رحمه الله في بدائع الصنائع ۹۸\۷: واما بیان من یفترض علیه لنقول انه لایفترض الا علی القادر علیه فمن لاقدرة له لاجهاد علیه لان الجهاد بذل الجهد وهو الوسع والطاقة بالقتال او المبالغة في عمل القتال ومن لاوسع له کیف یبذل الوسع (حقانیه: ۵\۲۸۸).

(۴) که دښمن د مسلمانانو په یو ښار حمله وکړه نو الاقرب فالاقرب پر ټولو خلګو د هغه دفع کول واجب دي لقوله تعالی ﴿انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا﴾ یعني ځوانان سپین یږي ټول و وځئ حتی چې ښځه به د خاوند له اجازي بغیر وځي او غلام به د مولی له اجازي بغیر وځي ولی چې په دي صورت کې جهاد د صلوة او صوم په شان فرض عین کیږي او د مولی او خاوند له حق څخه فرض عین مقدم دي.

(۵) که مال فئ (فئ هغه مال دی چې له جنګ کولو څخه بغیر وصول شوی وي لکه د خراج او جزیه په د ول سره حاصل شوی مال) په بیت المال کې موجود وونو جعل (یعني مجاهدینو ته د ورکولو لپاره له خلګو څخه

روپۍ وصول كول )مكروه دى ولى چې دا پر طاعت باندي دمزدوري اخيستلو سره مشابه ده دكوم چې هيڅ ضرورت نشته په دي وجه چې بيت المال دهمدي لپاره دى چې دمسلمانانوپه كارراشي هوكه بيت المال خالي وي نوبيا په دي كې څه حرج نشته چې ځيني مسلمانانونوروته قوت وركړي ولى چې په دي په معمولي ضررسره دلوى ضرر(يعنى دكفاروضرر)دفع كول دي .

(٦)فَإِنْ حَاصَرْنَاهُمْ نَدْعُوهُمْ إِلَى الإِسْلَامِ فَإِنْ أَسْلَمُوا (٧) وَإِلَّا إِلَى الجِزْيَةِ فَإِنْ قَبِلُوا فَلَهُمْ مَا لَنَا وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَيْنَا (٨) وَلَا نُقَاتِلُ مَنْ لَمْ تَبْلُغْهُ الدَّعْوَةُ إِلَى الإِسْلَامِ (٩) وَنَدْعُو نَدْبًا مَنْ بَلَغَتْهُ (١٠) وَإِلَّا نَسْتَعِينُ بِاللهِ تَعَالَى وَنُحَارِبُهُمْ بِنَصْبِ المَجَانِيقِ وَحَرْقِهِمْ وَغَرْقِهِمْ وَقَطْعِ أَشْجَارِهِمْ وَإِفْسَادِ زُرُوعِهِمْ

**ترجمه**:نوكه موږكافران محاصره كړونوهغوئ ته به داسلام دعوت وركوونوكه هغوئ مسلمان شول نوښه ده ،كه نه نو د جزيه وركولوبه ورته وايونوكه هغوئ قبول كړه نوهغوئ لره هغه دي كوم چې موږلره دي اوپرهغوئ هغه دي كوم چې پرموږ دي ،اوموږبه جنګ نه كوولـه هغوسره كوموته چې نه وي رسيدلى داسلام دعوت ،اواستحبابابه داسلام دعوت وركوو كوموته چې دعوت رسيدلى وي ،كه نه نو موږبه له الله تعالى څخه په كومک غوښتلوله دوئ سره جنګ كوو دمنجنيق له نصب كولو ،دهغوئ له سوځولو ، دهغوئ له ډوبولو ،دهغوئ ددرختوله پري كولواودهغوئ دكښت له بربادولوسره .

**تشريح** :(۶)كله چې مسلمانان دارالحرب ته په داخليدلوسره كوم ښارياقلعه محاصره كړي نوله ټولو وراندي دي كافرانوته داسلام قبلولودعوت وركړي ولى چې حضرت ابن عباس ﷺ فرمايي﴿ماقَاتَلَ رسولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم قَوْمًا قَطُّ إِلَّا دَعَاهُمْ إِلَى الإِسْلَامِ﴾ (يعنى نبى ﷺ له يو قوم سره داسلام ددعوت وركولو بغير قتال نه دى كړى ).نوكه هغوئ داسلام دعوت قبول كړ نو مسلمانان دي له هغوئ سره جنګ نه كوي ولى چې مقصود حاصل شو﴿ ولقوله ﷺ أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ الناسَ حتى يقولوا لا إله إلا الله﴾(يعنى زه مأمور يم چې له خلكوسره به تر هغو قتال كوم تر څوچې هغوى لااله الاالله وايي).

(۷)قوله والاالى الجزية اى وان لم يسلموا ندعوهم الى اداء الجزية .يعنى كه هغه خلكو داسلام دعوت قبول نه كړ نو له هغوئ څخه به جزيه (دځمكې محصول ،ټيكس چې له ذمى څه اخيستل كيږي )طلب كړي ولې نبى ﷺ به چې كله لشكر دجهاد لپاره ليږداوو نو دلشكر امير ته به يې همداحكم كاوه ،په دي شرط چې هغوئ مرتدين نه وي،نو كه هغوئ جزيه وركول قبول كړل نو هغوئ دمسلمانانو ذميان شول لهذادهغوئ لپاره به هغه اسانتياوي وي كومې چې دمسلمانانولپاره وي يعنى دهغوئ وينې اومالونوبه دمسلمانانو دمالونوپه شان محفوظ وي ولى چې هغوئ جزيه وركول دهمدي لپاره قبول كړي دي اوپرهغوئ به هغه ذمه واريانې وي كومې چې پرمسلمانانودي يعنى كه له هغوئ څخه دكوم قسم ظلم صدوروشو نودهغه به هغه سزاوي كومه چې مسلمان ته وركول كيږي.

(۸)له داسې كافرانوسره به موږقتال نه كوو كوموته چې داسلام دعوت نه وي رسيدلى ولى چې په دعوت وركولوسره به هغوئ وپوهيږي چې موږله هغوئ سره ولې لپاره جنګيږودهغوئ دمال دوړلويادهغوئ داولاددبندي كولولپاره نه. نواميددى چې هغوخلكوپه اسلام قبلولوسره به موږدقتال له مشقت څخه خلاس شو.

(۹)او كومو كفاروته چې داسلام دعوت رسيدلى وي هغوئ ته هم له قتال شروع كولو وړاند ي داسلام دعوت وركول مستحب دى مګر واجب نه دى ولې چې دعوت هغوئ ته رسيدلى دى ،ليكن دتشهيراسلام وروسته اوس دا حكم نه دى ولى چې اوس هر كافرته معلومه ده چې مسلمان دكوم شي لپاره جنګيږي،پردي بالاپه دعوت وركولوسره هغوئ كله دخپل حفاظت داسي بندوبست كوي (تاياترېي) چې بياپرهغوئ قبضه كول مشكل كيږي .

(۱۰)قوله والا نستعين بالله تعالى اى وان لم يقبلو الجزية نستعين بالله تعالى .يعنى كه كفارو د اسلام له قبلولو او جزيه وركولو څخه انكار وكړنو مسلمانان دي له الله ﷻ څخه كومک وغواړي او له هغوئ سره دي قتال شروع كړي ولى چې الله ﷻ دخپلو اولياء مرسته كونكى دى او دخپلو دشمنانوهلاكونكى دى نو په ټولو امورو كې له الله ﷻ څخه مدد غوښتل په كاردى ،اوس به مسلمانان له كفاروسره دمنجنيق (دايوه آله ده چې په هغې سره به لويې لويې ډبري ويښتل كيدلي ،دډبري ويښتلوپخوانى لاسي مشين دى ، مراد دادى چې دخپل دور اسلحه دي استعمال كړي )په نصب كولوجنګ كوي ولى چې نبى كريم ﷺ پرطائف منجنيق نصب كړى وو.او هغوئ دي په اوركې وسوځوي (يعنى دهغوئ كورنو ،باغونه اواسباب وغيره )ولى چې نبى كريم ﷺ ديهودبنونضيردرختي سوځولي وي ،اوپركافرانودي اوبه ورايله كړي يعنى كه دهغوئ دغرق كولوموقع وي نوغرق دي كړي ،اودهغوئ درختي دي پرې كړي اوكښتونودي ورخراب كړي ولى چې په دي سره دهغوئ شوكت ختم اوجماعت متفرق كيږي په دي وجه دامشروع اعمال دي .

(۱۱)وَرَمْيِهِمْ وَإِنْ تَتَرَّسُوا بِبَعْضِنَا وَنَقْصِدُهُمْ(۱۲)وَنُهِينَا عَنْ إِخْرَاجِ مُصْحَفٍ وَامْرَأَةٍ فِي سَرِيَّةٍ يُخَافُ عَلَيْهَا(۱۳)وَغَدْرٍ وَغُلُولٍ وَمُثْلَةٍ (۱۴)وَقَتْلِ امْرَأَةٍ وَغَيْرِ مُكَلَّفٍ وَشَيْخٍ فَانٍ وَأَعْمَى وَمُقْعَدٍ(۱۵)إِلَّا أَنْ يَكُونَ أَحَدُهُمْ ذَا رَأْيٍ فِي الْحَرْبِ أَوْ مَلِكًا.

**ترجمه**:اوپرهغوئ دغشوپه واروليوسره كه څه هم هغوئ له موږ څخه ځيني سپر(ډال)جوړكړي اوموږبه دهغوئ قصد كوو ، اوموږمنع كړل شوييو دقران مجيد او ښځې په داسي لښكركې له وړلو څخه په كوم كې چې پردوئ ويره وي،او له عهد ماتولو څخه اوپه مال غنيمت كې له خيانت كولو څخه اوله مثله كولو څخه ،اودښځې اوغيرملكف اوسپين ږيري اوړانده اوشلى له وژلو څخه ،مګرداچې له هغوئ څخه ذى رأى وي دجنګ په امورو كې ياپادشاه وي .

**تشريح**:(۱۱)قوله ورميهم وان تترسوا ببعضنا اى ولنحاربهم برميهم وان تترسوا ببعضنا .يعنى له كافرانوسره به په ډبرو او غشو جنګ كوو كه څه هم مسلمان بندي يامسلمان تاجر دهغوئ په منځ كې موجود وي اوهغوئ هغه دځان لپاره سپرجوړكړي ولى چې په ويښتلو كې له مسلمانانو څخه دفع دضرر عام ده او دبندي اوتاجروژل ضرر خاص دى اودضررعام په نسبت دضررخاص قبلول اسهل دي ،البته په غشواوډبرو ويښتلوكې نيت دكفاروكوو ولى چې فعلاخواوس په مسلمانانو اوكافرانو كې تميزكول ممكن نه دي حال داچې په نيت كې داامتيازممكن دى اوطاعت دقدرت په اندازه وي لهذانيت به دكافرانوكوي .

(۱۲)او موږمنع كړل شوى يو دقران مجيد اوښځې په داسي لښكركې له وړلو څخه په كوم كې چې پردوئ ويره وي يعنى كه دمسلمانانوټولى كوچنى وي (كومې ته چې سريه ويل كيږي)پركومه چې ډيراطمينان نه وي نوبياد ښځو اوقران كريم له ځان سره وړل مكروه دي ولى چې په داسي صورت كې دهغوئ

دضائع كيدلواو دهغوئ داستخفاف خطره ده ،البته كه دمسلمانانو جماعت لوى وودېره پرهغوئ ډيره خطره نه وه نودښځواوقران مجيدله ځان سره په وړلوكې څه مضائقه نشته ولى چې غالب حال دسلامتيادى والغالب كالمتحقق.

(۱۳)قوله وغدروغلول اى ونهيناعن غدروغلول . مسلمان له غدر،او غلول ،او مثله ،كولو څخه منع كړل شوي دي. يعنى مسلمان به دجنګ بندى، وعده نه ماتوي او غلول (دغنيمت له مال څخه غلاكولو ته غلول وايي )به نه كوي او ددشمن مثله (دمقتول دپوزي ،او غوږونو وغيره په پري كولوسره دشكل خرابولو ته مثله وايي )به نه كوي﴿لقوله ﷺ لاتغلوا ولاتغدروا ولاتمثلوا﴾(يعنى دغنيمت مال مه غلاكوئ او وعده مه ماتوئ او مثله مه كوئ).

(۱۴)قوله وقتل امراة وغير مكلف اى ونهيناعن قتل امراة وغير مكلف .مسلمان ددشمن دښځي ،او غيرمكلف ،او سپين‌ږيرى،او ړانده،او دشل،له وژلو څخه منع كړل شوي دي يعنى پر مسلمانانو واجب دى چې ددشمن قوم ښځي،او كوچنيان ،او شيخ فاني،او ړوند ،او ګوډ،به نه قتل كوي ولى چې مو ږته صرف دجنګ كونكوقتل مباح دى او دا خلک اهل قتال نه دي .

(۱۵)البته كه له دي خلكو څخه كوم يوه په جنګي معاملاتوكې رأيه وركوله نو هغه به هم قتل كيږي ولى چې دشمن دهغه له رأيې څخه استعانت حاصله وي ،همداشان كه دوئ كوم يودهغوئ باچاوو نوهم به قتل كيږي ولى چې دده په وژلوسره ددښمن جماعت پاشل كيږي .

(۱۶)وَقَتْلِ أَبٍ مُشْرِكٍ وَلْيَأْبَ الِابْنُ لِيَقْتُلَهُ غَيْرُهُ (۱۷)وَيُصَالِحُهُمْ وَلَوْ بِمَالٍ إِنْ خَيْرًا (۱۸)وَنَبْذُلُو خَيْرًا (۱۹)وَنُقَاتِلُ بِلَا نَبْذٍ لَوْ خَانَ مَلِكُهُمْ (۲۰)وَالْمُرْتَدِّينَ بِلَا مَالٍ فَإِنْ أَخَذَ لَمْ يُرَدَّ (۲۱)ولم نبع سلاحا منهم (۲۲)ولم نقتل من أمنه حر او حرة (۲۳)وَنَبْذُلُو شَرًّا (۲۴)وَبَطَلَ أَمَانُ ذِمِّيٍّ وَأَسِيرٍ وَتَاجِرٍ (۲۵)وَعَبْدٍ مَحْجُورٍ عَنِ الْقِتَالِ.

**ترجمه** :او منع(كړل شوى ديى)دمشرک پلار له قتل كولو څخه او زوى دي منع شي ترڅوقتل كړي هغه لره كوم بل څوک، اوموږبه له دوئ سره صلح كووكه څه هم په مال سره وي كه په صلح كې خيروو ، اوموږبه صلح ماتووكه په دي كې خيروواوله هغوئ سره به جنګ كووله صلح ماتولوبغيركه خيانت وكړ دهغوئ بادشاه ،اوله مرتدينوسره به صلح كووله مال اخيستلو بغيراوكه واخيستل شونوبيرته به نه وركول كيږي،اوموږبه نه خرڅووپردوئ اسلحه،او موږبه جنګ نه كووله هغه سره كوم ته چې پناه وركړه كوم ازادنارينه يابښځي، او ماتووبه يې كه پناه وركول زموږ لپاره شرروو ،اوباطله ده پناه وركول دذمي اوبندي اوتاجر ،اوله قتال څخه دمنع شوى غلام .

(۱۶) قوله وقتل اب مشرک اى ونهيناعن قتل اب مشرک،يعنى كه دچاپلار مشرک وي په خپله دي دقتلولو لپاره نه ورمخته كيږي لقوله تعالى﴿وصاحبهما فى الدنيا معروفا﴾(يعنى په دنيا كې له والدينوسره په ښه طريقه ژوند وكړه ) بس نودلته له پلارسره ښه دادي چې په خپله دي په وړاندي كيدنوسره .. وژني بلكه څنګ ته دي شي ترڅوچې كوم بل څوک يې قتل كړي،ليكن كه پلار حمله وكړه ، او دځان دژغورني بل طريقه نه وه،نو بيا دپلار په قتلولو كې څه حرج نشته،ولى چې دا له خپل نفس څخه دفاع ده اوخپل ژوندته دپلاربه ژوند په ترجيح وركولو كې څه حرج نشته ، همداوجه ده چې كه پلار او ځوئ دوا ړه تږي وي اوله ځوئ سره دومره

اوبه وي چې ديوه کس لپاره کافي وي نو ځوئ ته داجائز دی چې اوبه په خپله وڅښي که څه هم پلار يې له تندي مړکيږي .

(١٧)که دمسلمانانو امام (پاچا) دمسلمانانو لپاره دابنه وګڼله چې داهل حرب ياداهل حرب له يوفرقې (ډلي) سره پرترک قتال (جنګ نه کولو) باندي صلح وکړي اوپه دې صلح کې دمسلمانانو فايده هم وي نوپه دي کې څه حرج نشته که څه هم په صلح کې دوئ ته مال ورکړي يايې له دوئ څخه واخلي، ولی چې په مصالحت کې دمسلمانانو فائده وي نودامعنی جهاددی په دي وجه چې دجهادمقصود اصلی (يعنی دفع شر)حاصل شو.

(١٨) که امام (پاچا) له کافرانوسره تريوې مودې پورې صلح وکړه، بيايې دصلحي په ماتولو کې دمسلمانانو لپاره خير وليدی ،نوامام دي دصلحي دماتولو خبر کافرانو ته ور وليږي بيادي له دوئ سره جنګ شروع کړي ،ولی کله چې دمسلمانانو مصلحت بدل شو نوبيا دعهد ماتول جهاد دی . اوپه داسي حال کې وعده پوره کول ظاهرااومعنی ترک جهاد دی ،په دي وجه به عهد ما توي .

(١٩) اودوعدې دماتولو دخبرله ورليږلو بغير موږ له کافرانوسره جنګ کولی شو خوپه دې شرط چې که دکافرانو پاچاابتداء وعده ماته کړه يعنی چې زموږ اوددوئ په مابين کې کومه وعده شوې وه هغه دوئ ماته کړه اوپرموږيې حمله وکړه نوامام المسلمين به دوئ ته دعهد دماتولو خبرنه وروليږي ولی کله چې دوئ په خپله عهدمات کړنواوس دعهد دماتولو دخبرورکولو حاجت پاتې نه شو .

(٢٠) قوله والمرتدين بلامال ای نصالح المرتدين لو کان الصلح خيراً، يعنی که له مرتدينو سره په صلح کې خير وو نوموږله دوئ سره هم صلح کولای شو ولی چې ددوئ داسلام قبلولوامیدشته لهذا له دوئ سره په جنګ کولو کې ځنډکول صحيح دی،اوله دوئ سره بغيرله مال اخيستلوصلح کوي ولی چې له دوئ څخه مال اخستل جزيه (ټيکس) ده اوله دوئ څخه جزيه اخستل جائزنه ده ،اوکه له دوئ څخه مال واخيستلی شونوهغه به دوئ ته بيرته نه ورکول کيږي ولی چې داغيرمعصوم مال دی اوپه بيرته ورکولو کې ددوئ اعانت دی .

(٢١) مسلمان دي پرکافرانواسلحه نه خرڅه وي ،يعني پرکافرانوباندي اسلحه خرڅول جائزنه دي ،ولی چې نبی ﷺ پرکافرانو باندي داسلحې له خرڅولو څخه منع کړي ده ،اوهمدراز پردوئ باندې داسلحې په خرڅولو کې دوئ ته دمسلمانانوپرخلاف په جنګ کولو کې قوت پيداکيږي .

(٢٢) که له موږڅخه يو ازادسړي ياازادې ښځې يوکافرته،يادکافرانويوجماعت ته، ياد يوقلعي والاته،ياديوښاروالا ته،امن ورکړ نودا امان ورکول صحيح دی ،اوس له موږڅخه يوه ته هم ددوئ وژل جائزنه دي، ولی چې نبی کريم ﷺ فرمايلي دي چې دمسلمانانووينه په خپل منځ کې سره برابره ده اوددوئ دذمه واري لپاره ددوئ ادنی هم سعی کوي يعنی که ادنی هم چاته پناه ورکړي نوهغه دټولو پرذمه لازميږي .

(۲۳) البته په موړکې که دیوچاپه داسي امن ورکولو کې دمسلمانانولپاضررروو،نو دمسلمانانوامام (پاچا) دي و دوئ ته دعهدماتولو خبر ورولیږي،لکه څرنګه چې امام په خپله امن ورکړی وي،بیاپه عهد ماتولو کې مصلحت معلوم شي نودعهدماتولو خبر ورلیږي.

(۲۴) که ذمي کوم کافرته امان ورکړ نوداجائزنه دی ولی چې ذمي کافرانوته په امن ورکولو کې متهم دی،همداشان کوم مسلمان چې له دوئ سره بندي دی یامسلمان داسي تاجر وي کوم چې ددوئ طرف ته ځي ، نوددوئ کوم کافرته امن وَرکول هم جائزنه دی ولی چې په دي شان سره خوبه کفارهروخت زموږدکوم بندي یاتاجرپه موندلوسره له ده څخه په امان اخیستلوسره خلاسیږي نوپه دي شان به په مجاهدینودفتح دروازي وتړلي شي.

(۲۵) قوله وعبدمحجور عن القتال ای وبطل امان عبدمحجور عن القتال ،یعني دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد زموږدکوم محجورعن القتال(له جنګ څخه منع شوی)غلام کوم کافرته امان ورکول هم جائزنه دی ولی چې امان ورکول هم یو عقددی اوغلام محجورعن العقوددی لهذادغلام امان ورکول صحیح نه دی ،البته که دده مولی ده ته دجنګ کولواجازت ورکړی وي نوبیادده امان ورکول صحیح دی ولی چې په اجارت فی القتال سره دی مأذون ګرځي نودده عقد امان هم صحیح دی ،دصاحبینوپه نزددغلام کوم کافرته امان ورکول صحیح دی ولی چې غلام هم مؤمن اوصاحب قوت دی نودده امان ورکول صحیح دی لکه چې دهغه غلام امان ورکول صحیح دی کوم ته چې دقتال اجازه ورکړل شوي وي.

ف: دامام ابوحنیفه رحمه الله راجح دی، لماقال العلامة الحصکفی رحمه الله وبطل امان ذمی.... واسیر وتاجروصبی وعبد محجورین عن القال وصحح محمد امان العبد (الدر المختار علي هامش ردالمحتار: ۳/ ۲۵۰) وقال العلامة اکمل الدین البابرتی: وفیه سدباب الاستغنام ای علی المسلمین وذالک ضرر فی حقهم فاذاکان ممنوعاعن الضرر للمولی فکیف یصح منه مایتضرر للمولی والمسلمین (العنایة علی هامش فتح القدیر: ۵/ ۲۱۳) وفی اللباب: وذکرالکرخی قول ابی یوسف مع ابی حنیفه ومشی علیه الائمة البرهانی والنسفی وغیرهماالصحیح (اللباب علی هامش الجوهرة: ۲/ ۳۳۸)

## بَابُ الْغَنَائِمِ وَقِسْمَتِهَا

### داباب دغنیمتونو اودهغو دتقسیم په بیان کې دی

دجهادپه نتیجه کې خوغنیمت حاصلیږي په دي وجه یې له حکم جهادڅخه وروسته دغنائموتفصیل بیان کړی دی ،غنیمت په لغت کې بې له تکلیفه دیوشئ حاصلیدلوته وای ،اودفقه په اصطلاح کې غنیمت هغه مال ته ویل کیږي ، کوم چې دجهاد فی سبیل الله په ذریعه په زور له حربی کافرانو څخه حاصل شي ، اوفئ هغه مال ته ویل کیږي کوم چې دصلح په ذریعه له حربی کافرانوڅخه حاصل شوی وي ،اونفل هغه اضافه انعام ته ویل کیږي ،کوم چې د امیر له طرف څخه د مجاهدینویوي خاصي ډلګی ته اعلان کړل شي ،مثلا دمجاهدینو کوم جماعت چې فلانی قلعه فتح کړي هغوئ ته به دهغې قلعې له مال غنیمت څخه نصف ورکول کیږي.

(۱) مافتح الإمام عنوة قسم بيننا او اقر أهلها ووضع الجزية والخراج (۲) وقتل الأسرى او استرق أو ترك أحرارا ذمة لنا وحرم ردهم إلى دار الحرب (۳) والفداء (۳) والمن (۵) وعقر مواش شق إخراجها فتذبح وتحرق (۱) وقسمة الغنيمة في دارهم لا للإيداع (۷) وبيعها قبلها

**ترجمة**: كوم چې امام قهرا (په زور) فتح كړي هغه دي زموږ په منځ كې تقسيم كړي، يادي دهغه ځاى اوسيدونكى پرهغه خلګ برقرار پريږدي، اومقرره دي كړي جزيه اوخراج، اوبنديان دي قتل كړي، يادي غلامان جوړ كړي، اويادې ازاد پريږدي په ذمي جوړولوسره، اوحرام دى دهغوئ دارالحرب ته واپس كول، اوفديه څني اخستل، اواحسان ورسره كول، اوخمې كول دهغو څارويو چې راوستل يې مشكل وي، نوذبح (حلال) دې كړي او ودې سوځوي، اوتقسيم كول دغنيمت په دارالحرب كې، نه په امانت وركول، اوخرڅول دهغه له تقسيم څخه وړاندي.

**تشريح**: (۱) كه امام كوم ښار په جنګ فتح كړنوده لره دهغه ځاى په څمكوكې اختيار دى كه يې خوښه شوه نودهغوخمس دي جلاكړي اوباقى مال دي په مجاهدينوتقسم كړي لكه نبى كريم ﷺ چې خيبرتقسم كړى وواوكه يې خوښه شوه نودهغه ځاى خلګ دي پرهغوبرقرار وساتي، اوپردوئ دي جزيه اوپرځمكودي خراج مقرركړي ولى چې حضرت عمر ﷺ په عراق كې دصحابه كرام ﷺ په موافقت همدشان كړي وو.

(۲) دمسلمانانو امام ته دبنديانوپه حق كې دري قسمه اختيار دي، كه خوښه شوه قتل دي كړي ولى چې نبى كريم ﷺ بنوقريظه قتل كړي وو، همدرازترڅوچې دفساد ماده بالكل ختمه شي، اوكه يې خوښه شوه نوهغوئ دي غلامان جوړكړي، ولى چې په دې كې دفع دشرهم ده، اودمسلمانانولپاره ډيره فائده هم ده، اوكه يې خوښه شوه نوهغوئ دي ازادپريږدي اودمسلمانانوذميان دي جوړكړي، لكه څرنګه چې عمر ﷺ دعراق له خلګوسره كړي وو، مګرداجائزنه ده چې بنديان دارالحرب ته واپس كړي ولى چې په دې شان كولوسره حربيانوته دمسلمانانوپه خلاف قوت حاصليږي.

(۳) والفداء والمن اى حرم الفداء والمن، دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد كافرقيدي (بندي) دمسلمان قيدي په بدل كې خلاصول جائزنه دى، ولى چې په دې كې دكفارومعونت دى، په دې وجه چې داكافرچې ولاړشي بيابه له موږسره جنګيږي، اوصاحبين فرمايي چې دمسلمان بنديانوپه عوض كې ددوئ خلاسول جائزدي ولى چې په داشان كولوكې دمسلمان تخليص (يعنى دكفاروله بندڅخه ازاديدل) دي اوتخليص مسلم له قتل كافرڅخه ښه دى. همداشان په كافربنديانوباندي احسان كول هم جائزنه دي (چې نه يې غلام جوړكړي اونه يې قتل كړي بلكه ازاديې كړي) ولى چې په دې كې دغانمينودحق ابطال دى.

**ف**: دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دى، لمافى اللباب والصحيح قول ابى حنيفه رحمه الله واعتمده المحبوبى والنسفى وغيرهما قال الزاهدى والمفادات بالمال لايجوز فى ظاهر المذهب كذا فى التصحيح (اللباب على هامش الجوهره: ۲/۳۳۶)

(۴) قوله وعقرالموشى شق اخراجها اى حرم عقرالموشى شق اخراجها، يعني كه امام له دارالحرب څخه دارالاسلام ته دتلو اراده وكړه اوله امام سره دكافرانو څاروي هم وو، نوكه دارالاسلام ته دهغو راوړل مشكل وو، نو هغه دي دپښوپه پريكولوسره ژوندي نه پريږيدي ولى چې په دې كې دحيوان تعذيب دى، اونه دي دكافرانولپاره ژوندي پريږدي ترڅوهغوئ له دې څخه فائده حاصله نه كړي بلكه امام به داڅاروي ذبح كړي اوو به يې سوځوي ولى چې څاروي دصحيح مقصدلپاره ذبح كول جائزدي اوله دې څخه زيات صحيح مقصدڅه كيداى شي چې په دې سره دكافرانوقوت اوشوكت ماتيږي، اوله ذبح كولوڅخه وروسته دي وسوځوي ترڅوچې كافران له هغوڅخه هيڅ قسم فائده وانه خلي.

(۵) قوله وقسمة الغنيمة في دارهم اي وحرم قسمة الغنمة في دارهم ،يعني د امام لپاره په دارالحرب کې دغنيمت تقسيمول جائزنه دی،ولی چې نبی ﷺ په دارالحرب کې دغنائمولو خرڅولو څخه منع فرمايلې ده اوقسمت معنی بيع ده ،هوهغه دي دارالاسلام ته رواړي اوبيادی تقسيم کړي ول چې دارالاسلام ته په راوړلو سره هغه محفوظ کيږي اوپه مال غنيمت کې دمجاهدينو ملک ثابتيږي .

(۶) قوله لا الايداع اي لايحرم ايدع الغنيمة عندالغانمين ،يعني مال غنيمت په دارالحرب کې مجاهدينو ته دامانت په ډول سره ورکول حرام نه دي ،يعني که امام ته په دارالحرب کې غنائم په لاس ورغلل اوله امام سره دومره څاروي اوباروړونکې اسباب نه وي چې په هغوغنائم بارکړي اودارالاسلام ته يې رواړي نودامانت په ډول دي په مجاهدينو تقسيم کړي ترڅوهغوئ دااموال غنميت دارالاسلام ته رواړي ولی چې مال غنيمت اوسورلي ټول دمجاهدينو دي بيادي له ټولو څخه راجمع کړي اوتمليکادي ددوئ په منځ کې تقسيم کړي .

(۷) قوله وبيعها قبلها اي وحرم بيعها قبلها،يعني ترتقسيم وړاندي په دارالحرب کې دمال غنيمت خرڅول هيچاته هم جائزنه دي،ولی چې په حديث کې له دي څخه منع راغلي ده ،اوهمدرازله تقسيم څخه وړانديې هغه مالک نه دی .

(۸) وَشَرِكَ الرِّدْءُ وَالْمَدَدُ فِيهَا (۹) لَا السُّوقِيُّ بِلَا قِتَالٍ (۱۰) وَلَا مَنْ مَاتَ فِيهَا وَبَعْدَ الْإِحْرَازِ بِدَارِنَا يُورَثُ نَصِيبُهُ (۱۱) وَيَنْتَفِعُ فِيهَا بِعَلَفٍ وَطَعَامٍ وَحَطَبٍ وَسِلَاحٍ وَدُهْنٍ بِلَا قِسْمَةٍ وَلَا يَبِيعُهَا (۱۲) وَبَعْدَ الْخُرُوجِ مِنْهَا لَا وَمَا فَضَلَ رُدَّ إِلَى الْغَنِيمَةِ

**ترجمه**: په مال غنيمت کې شريک دي د کومک والا اومددوالا ،نه بازاري خلګ بغيرله جنګ څخه ،اونه هغه خلګ چې په دارالحرب کې مړه شي ،اوپه دارالاسلام کې ترجمع کولو وروسته به دهغه حصه وارثانو ته ورکول کيږي ،اونفع اخستلای شي په دارالحرب کې له چاري (دڅارويو خورک ) څخه اوله ډوډي څخه اوله لرګو څخه اوله اسلحې څخه اوله تيلو څخه له تقسيم کولو څخه بغير ،اوخرڅوي دې نه هغه، اوله دارالحرب څخه تروتلو ورسته دي نفع نه ورباندي اخلي ،اوڅه چې پاتي شي نوردي کړي غنمت ته .

**تشريح**:(۸) يعني په لښکر کې له جنګ کونکوسره رد، (هغه مددګار چې دمباشرومجاهدينو ترشا ولاړوي که ضرورت پيښ شي نومجاهدين په دوئ باندي قوت حاصلوي ) هم دغنيمت په حصه کې برابر شريک دي، ولی چې په سبب کې داوړه سره برابر دي ،اوسبب ددارالحرب له سرحده وراوښتل دي،ياپه جنګ کې حاضرېدل دی،اوکه مجاهدينو تراوسه له دارالحرب څخه دغنيمت مال نه وو را ايستلی چې مددګارلشکر (دمجاهدينو دارالحرب ته له داخلېدلو وروسته چې کوم دمدد لپاره ور شي ) په دارالحرب کې له مجاهدينوسره يوځای شو نومددګار هم له دوئ سره په مال غنيمت کې شريک دي ولی چې دفوځ له استقرارملک څخه وړاندي ددوئ له طرف څخه معنی جهادمتحقق شو .

(۹) قوله لاالسوقي اي لايشارک السوقي ،يعنی په مال غنيمت کې دلښکر دبازار والا(يعني له لښکر سره چې کوم بازاردی په هغه کې تجارت کونکي په لښکر کښي شامل دي ليکن ددوئ مقصد جنګ کول نه دی خپل تجارت کول دي)شريک نه دي،ولی چې هغوئ په قصد دجنګ له سرحد څخه نه دي اوښتي،نودسبب دنيستي والي له کبله دوئ دغنيمت حقدار نه دي ،هوکه دوئ هم په جنګ کې شريک شول ،نودوجودسبب په وجه سره به هغوئ هم دغيمنت مستحق وي .

(۱۰) که کوم مجاهد په دارالحرب کې مړ شو،نو دمال غنيمت دارالاسلام ته له راوړلو ورسته دده په مال غنيمت کې هيڅ حق نشته ،يعني دده وارثانوته به دده حصه نه ورکول کيږي،ولې چې ميراث خو دمورث په ملک کې جاري کيږي ،اومال غنيمت دارالاسلام ته له راوړلو څخه وړاندې دمورث ملک نه دی ، اوکه دارالاسلام ته دمال غنيمت له راوړلو څخه وروسته کوم مجاهد مړشي ،نودده حصه به دده وارثانوته ورکول کيږي ،ولې چې دوارثانوحق په دې کې دمورث په واسطه سره ثابت شوی دی.

(۱۱) دمسلمانانو دلښکرلپاره جائزدی،چې په دارالحرب کې له مال غنيمت څخه له تقسيم کولوبغيرخپلو څارويوته دهغه ځای وابښه وغيره ورکړي،اوپه خپله هم دخوراک له شيانوڅخه (مثلا ډوډی غوښه ) خوراک کولای شي،اوهمداشان دهغه ځای لرګي سوځولای شي،اودهغه ځای تيل استعمالولای شي،ولې چې نبی کريمﷺ دخيبرپه موقع وفرمايل ﴿کلوهاوعلفوها ولاتحملوها﴾ويې خورئ اوخپلو څارويوته يې وروخوروئ،له ځان سره يې مه وړئ ،اوهمدراز ددې شيانو داستعمالولو ضرورت وي، مګرمذکوره شيان دې نه خرڅوي ولې چې مال غنيمت دارالاسلام ته تر راوړلو وړاندې د هغه ملک نه دی.

(۱۲) کله چې مسلمانان له دار الحرب څخه راووځي نوددوئ ته جائزنه ده چې له مال غنيمت څخه خپلو څارويوته څه وروخوروي،يادخورک څښبک له شيانوڅخه په خپله څه وخوري،ولې چې اوس دا مال دغانمينو مشترک ملک دی،اوله مشترک مال څخه دشريک له اجازې بغيرفائده اخيستل جائزنه ده ،همدرازاوس داباحت وجه يعنی ضرورت پاتې نه شو په دې وجه هم جائزنه ده ،بلکه له کوم مجاهدسره چې دڅارويوواښه ياخورک پاتې شي نوهغه دې په مال غنيمت کې جمع کړي ولې چې اوس په دې کې دغانمينوحق مستحکم شوکمامر.

(۱۳) وَمَنْ أَسْلَمَ منهم أَحْرَزَ نَفْسَهُ وَطِفْلَهُ (۱۴) وَكُلَّ مَالٍ معه أَوْ وَدِيعَةً عِنْدَ مُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ (۱۵) دُونَ وَلَدِهِ الْكَبِيرِ وَزَوْجَتِهِ وَحَمْلِهَا (۱۶) وَعَقَارِهِ وَعَبْدِهِ الْمُقَاتِلِ

**ترجمة**:اوکه چا اسلام قبول کړ له دوئ څخه نوهغه محفوظ کړ خپل ځان اوخپل کوچني اولادونه ،اوهر هغه مال چې له ده سره دی ،ياهغه مال چې په امانت پروت وي له کوم مسلمان ياذمي سره ، نه خپل لوی زوی لره ،اوخپلې ښځې اودهغې حمل لره ،اوخپلې ځمکې اوجنګ کونکی غلام لره .

**تشريح**:(۱۳)په کافرانو کې چې څوک په دارالحرب کې ايمان راوړي نو هغه دخپل اسلام په وجه سره خپل ځان محفوظ کړځکه چې له اسلام سره له پيله مملوک والی ممکن نه دی،اوده خپل نابالغ اولاد هم محفوظ کړولې چې هغوئ دخپل پلار داسلام له کبله دهغه په تبع سره مسلمان دي ، لهذا نه ددوئ قتل کول جائزدی، اونه غلام جوړول جائزدی.

(۱۴) اوده خپل هرهغه مال هم محفوظ کړ چې دده په قبضه کې دی،ولې چې دمجاهدينو له قبضې څخه دده قبضه وړاندې ده ،همداشان ده خپل هغه مال هم محفوظ کړکوم چې ده له کوم مسلمان ياذمی سره امانت ايښی وي ولې چې حکما دامال په خپله دمالک په قبضه کې شمارل کيږي په دې وجه چې دمودَع قبضه دمالک قبضه شمارل کيږي ولې چې مودَع دمالک لپاره دمال حفاظت کوي .

(۱۵) که مسلمانان پر دارالحرب باندي غالب شو نودهغه شخص (چې په دارالحرب کې ایمان راوړی دی) بالغ اولادونه محفوظ نه دي، بلکه مال غنیمت دي، ولی چې بالغین حربی کافران دي دپلار تابع نه دي لهذا دپلار په تبع سره مسلمان نه شمارل کیږي . هم داشان ددي نوي مسلمان ښځه هم غنیمت ګرځي ، ولی چې هغه حربیه کافره ده، اوپه اسلام کې دخاوند تابع نه ده، اوهمداشان ددي ښځي حمل هم غنیمت ګرځي ولی چې دا حمل لاترا وسه ددي ښځي جز دی، نوپه رقیت کې دمور تابع دی.

(۱۶) قوله وعقاره وعبده المقاتل ای دون عقاره وعبده المقاتل ، یعني همداشان ددي نوی مسلمان غیرمنقوله مال هم محفوظ نه دی بلکه ټول مال فئ ګرځي ولی چې داهم فی الجمله په دارالحرب کې دکیدلوپه وجه سره ددارالحرب والاوودبادشاه په قبضه کې دي نوحقیقة دادمالک په قبضه کې نه دي په دي وجه دامال فئ ګرځي .همداشان دده داسې غلام هم غنیمت دی کوم چې دمسلمانانوپه خلاف جنګیږي ولی چې داغلام دخپلې سرکشۍ په وجه سره اوس دخپل مولی له لاسه په وتلوسره ددارالحرب دخلګوتابع شوی دی لهذا دخپل مولی په تبع سره محفوظ نه دی ، البته که هغه غیرمقاتل وي نودمولی دی .

## فصل

دافصل دغنیمت دتقسیمولوپه بیان کې دی

دکثرت تفریعاتوپه وجه سره یې کیفیت تقسیم په مستقل فصل کې بیان کړی دی .

(۱) لِلرَّاجِلِ سَهْمٌ وَلِلْفَارِسِ سَهْمَانِ (۲) وَلَوْ لَهُ فَرَسَانِ (۳) وَالْبَرَاذِينُ كَالْعَتَاقِ (۴) لَا الرَّاحِلَةُ وَالْبَغْلُ (۵) وَالْعِبْرَةُ لِلْفَارِسِ وَالرَّاجِلِ عِنْدَ (۶) وَلِلْمَمْلُوكِ وَالْمَرْأَةِ وَالصَّبِيِّ وَالذِّمِّيِّ الرَّضْخُ لَا السَّهْمُ

**ترجمه**: دپیاده لپاره یوه حصه ده اودسپاره لپاره دوې حصې دي ، که څه هم له ده سره دوه اسونه وي ، اوترکي آس دعربي آس په شان دی، نه اوښ اوکچر، دسپاره اوپیاده کیدلو اعتبارله دارالاسلام څخه دوتلو وخت دی، اودغلام اودښځي اودکوچني اوډذمي لپاره لږعطیه ده نه حصه ،

**تشریح**: (۱) دمال غنیمت دارالاسلام ته له راوړلو وروسته دي امام په دي ډول تقسیم کړي، چې اول دي له ټول مال څخه خمس وباسي، اوله ځان سره دي محفوظ کړي، (پردرو فرقوبې تقسیم کړي چې دهغوئ ذکر ورسته راځي) باقي څلور حصې به پرمجاهدینو تقسیم کړي، بیادا امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد په مجاهدینو کې دشهسوار (آس والا) لپاره دوه حصې دي اودپیاده یوه حصه ده، ولی چې د ابوداود شریف حدیث دی چې نبی ﷺ فارس ته دوې حصې اوپیاده ته یوه حصه ورکړي وه ، اوهمداشان دامعلومول چې چا ډیر کار کړی دی اوچاکم کړی دی متعذر دی ، نودزیادت حکم به پرظاهري سبب داښروي، اوپه شهسوارکې دوه سببه ظاهردي یودده ذات اوبل دده آس ، اوپه پیاده کې صرف یوسبب دی چې هغه دده ذات دی، لهذا دسپاره پرپیاده استحقاق دو چنده دی، اودصاحبینو رحمهما الله په نزد دشهسوار لپاره درې حصې دي اودپیاده لپاره یوه حصه ده ، ولی چې له ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی ، چې نبی ﷺ فارس ته درې حصې ورکړې اوپیاده

ته يوه حصه، صاحبينو ته ځواب وركول شوى دى چې په حديث شريف كې د فارس له دروحصو ځخه يوه حصه پرتنفيل (انعام) باندې محموله ده، يعنې فارس ته دريمه حصه دانعام په ډول سره وركړل شوى.

ف: د امام ابو حنيفه رحمه الله قول راجع دى، لمافي الشامية: (قوله استحق سهمين) سهم لنفسه وسهم لفرسه وهذا عنده، وعندهما ثلاثة اسهم له سهم ولفرسه سهمان لانه ﷺ فعل ذالک على مارواه البخاري وغيره، وحمله ابو حنيفه على التنفيل توفيقا بين الروايات، ملتقى وشرحه، واذا كان حديث في البخاري وحديث آخر في غيره رجاله رجال الصحيح او روى عنهم البخاري كان الحديثان متساويين والقول بان الاول اصح تحكم لانقول به مع ان الجمع وان كان احدهما اقوى اولى من ابطال الأخر وتمامه في الفتح (ردالمحتار: ۳/۲۵۶).

(۲) يعنې د فارس لپاره دوې حصې دي كه ځه هم له ده سره دوه آسونه وي، ولې چې په يو وخت كې جنګ صرف پريوه آس باندې كيږي نه پر دو يا زيات تر دو باندې، لهذا حصه به هم صرف ديوه آس وركوله كيږي نه ده زياتو.

(۳) يعني په آسونو كې براذين (دبرذون جمع ده تركي آس ته ويل كيږي) او عتاق (دعتيق جمع ده عربي آس ته ويل كيږي) برابر دي، ولې چې دلفظ خيل اطلاق پرټولو برابر كيږي، او په قرآن شريف كې خيل ذكر دى، وهو قوله تعالى ﴿وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ﴾ (يعني برابره وئ آسونه چې په هغه باندې د الله تعالى دښمنان او خپل دښمنان بيروى).

(۴) قوله لاالراحلة والبغل اى لايسهم للراحلة والبغل. يعنې په مال غنيمت كې بار وړنكو ځارويو (مثلاً كه اوښ اوخر وغيره) او كچرو ته حصه نه وركول كيږي، ولې چې دآسونو په شان پردوئ په سپرتيا جنګ نه كيږي.

(۵) ديو چا دسپوروالى يا پياده والى لپاره ددارالحرب ترسرحد اوښتل معتبر دى، مثلاً كه كوم شخص دارالحرب ته له آس سره داخل شو بيايې آس مړشو نو هغه دسپاره دحصې مستحق دى، يعني هغه ته به دوې حصې وركول كيږي، او كه كوم شخص دارالحرب ته پياده داخل شو بيايې هلته آس واخيستى، نو د پياده دحصې مستحق دى، يعنې هغه ته به يوه حصه وركول كيږي، ولې چې دارالحرب ته اوښتل جنګ دى، په دي وجه چې له دي ځخه دښمن په خوف كې مبتلاء كيږي، له دې ځخه وروسته خو د دوام حالت دى د كوم چې اعتبار نشته، لهذا له له سرحد ځخه داوښتلو اعتبار به كيږي، په دي وخت كې چې دچا آس وي هغه سپور بلل كيږي او كه دچا نه وي هغه پياده دى.

(۶) دغلام، ښځې، كوچني او ذمي لپاره صرف لږ عطيه ده، يعني ځومره چې امام مناسب وبولي هغومره دي وركړي، ليكن له ذمي ماسوا دانورو ته چې كومه عطيه وركوي هغه به دمجاهد له حصې سره برابره نه وي، او ذمي كه ځه ډير كار وكړ نو د مجاهد تر حصې زيات اجرت وركول صحيح دى، دغنيمت په مال كې به دوئ ته حصه نه وركوي، ولې چې نبي ﷺ به دښځو او كوچنيانو او غلامانو لپاره حصه نه معلوموله، او ذمي ته به په دي وجه حصه نه وركوي چې نبي ﷺ له يهود. انو ځخه ديهودانو پرخلاف مرسته غوښتې وه مګر په مال غنيمت كې يې دوئ ته حصه نه وه وركړي.

(۷) والخمس لليتامى والمساكين وابن السبيل وقدم ذوو القربى الفقراء منهم عليهم (۸) ولا حق لأغنيائهم (۹) وذكره تعالى للتبرك (۱۰) وسهم النبي صلى الله عليه وسلم سقط بموته كالصفي

**ترجمة:** او خمس د يتيمانو او مسکينانو او مسافرو لپاره دی، او مخته کيږي په دوئ کې ذی القربی پر دوئ باندي، او هيڅ حق نشته د دوئ د غنيانو لپاره، او د الله تعالی ذکر د تبرک لپاره دی، او د نبی ﷺ حصه له وفات وروسته ختمه شوه لکه صفی.

**تشريح:** (۷) د مال غنيمت هغه پنځمه حصه کومه چې امام جلا محفوظه کړي وه، هغه به پر درو حصو تقسيم کړي، يوه حصه د يتيمانو لپاره، او دوهمه حصه د مسکينانو لپاره، او دريمه حصه د داسي مسافرو لپاره کوم چې له خپلو مالونو څخه منقطع (ليری) وي، لقوله تعالی (وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَى واليتامی والمساكين وابن السبيل) په دي درو ډلو کي فقيران ذی القربی (بنی هاشم) هم داخل دي، ليکن دوئ به پر دي نورو وړاندي کيږي، يعني د دوئ يتيم به د دي نورو پر يتيم او د دوئ فقير به د دي نورو پر فقير مقدم کيږي، ولی چې دوئ ته صدقه ورکول جائزنه دي، ولان الله تعالی قدم ذکرهم فقال (ولذی القربی واليتامی الخ).

(۸) د ذوی القربی (بنی هاشم) غنيانو ته به په خمس کې هيڅ حصه نه ورکول کيږي، ولی چې په خمس کې چې څوک حقداره جوړيږي هغه د فقر يا د حاجت په سبب دی، په دي وجه په ايت مبارکه کې چې کوم ذوی القربی ذکر دي له هغوئ څخه د بنی هاشمو فقيران مراد دي، کوم چې په نورو فقيرانو کې شامل دي، د نبی ﷺ قريبان (بنی هاشم) د نبی ﷺ په زمانه کې د ده د نصرت په وجه سره د خپلی حصی حقدار وو، او د نبی ﷺ تر فات وروسته د فقر په سبب حقدار دي نه د نصرت په سبب، لانقطاع النصرة.

(۹) الله تعالی چې په دي ايت کريمه (وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ) کې د خمس کومه حصه د ځان لپاره ذکر کړي ده هغه صرف د کلام په شروع کې د الله تعالی په نامه سره د تبرک حاصلولو لپاره مذکوره ده له دي څخه واقعي د الله تعالی حصه مراد نه ده.

(۱۰) او په ايت مبارکه کې چې د نبی ﷺ کومه حصه ذکر شوي ده هغه د نبی ﷺ د وفات په وجه سره ساقطه شوي ده، ولی چې اوس هغه ﷺ خپلي حصي ته هيڅ ضرورت نلري، لکه څرنگه چې صفی (صفی هغه شئ دی کوم چې به نبی ﷺ له غنيمت څخه د ځان لپاره خوښه وی لکه زغره يا توره يا مينځه وغيره) ساقطه شوي ده.

(۱۱) وَإِنْ دَخَلَ جَمْعٌ ذُو مَنَعَةٍ دَارَهُمْ بِلَا إِذْنٍ خُمِّسَ مَا أَخَذُوا وَإِلَّا لَا (۱۲) وَلِلْإِمَامِ أَنْ يُنَفِّلَ بِقَوْلِهِ مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا فَلَهُ سَلَبُهُ (۱۳) وَبِقَوْلِهِ لِلسَّرِيَّةِ جَعَلْتُ لَكُمُ الرُّبُعَ بَعْدَ الْخُمُسِ (۱۴) وَيُنَفِّلُ بَعْدَ الْإِحْرَازِ مِنَ الْخُمُسِ فَقَطْ وَالسَّلَبُ لِلْكُلِّ إِنْ لَمْ يُنَفِّلْ (۱۵) وهو مركبه وثيابه وسلاحه وما معه

**ترجمة:** او که داخل شو يو جماعت طاقتور دار الحرب ته بلا اجازت نو خمس به اخيستل کيږي له هغه مال څخه کوم چې دوئ راوړي، او که نه وو نو نه، او امام ته جائز دی چې زيات ورکړي په دي وينا سره چې څوک کوم يو قتل کړي نو د هغه سامان به هغه ته ورکول کيږي، يا کوم لښکر ته وواي چې ما مقرر کړ ستاسي لپاره له خمس څخه وروسته ربع، او يا ته حصه به ورکوي له جمع کولو څخه وروسته صرف له خمس څخه او سامان به د ټولو لپاره وي د ډلګی والو څخه که يي د زيادت وعده نه وه کړي، او سلب د مقتول سورلی او جامي او اسلحه او هغه مال دی کوم چې له ده سره وي.

**تشريح:** (۱۱) که د مسلمانانو د امام له اجازي بغير د مسلمانانو کوم داسي جماعت دار الحرب ته داخل شو چې هغه لره قوت او منعت حاصل وو او هغوئ له هغه ځای څخه يو شئ راوړی راغلل نو له هغه څخه به خمس

اخيستل كيږي،ولې چې دا غنيمت دی ،په دي وجه چې دوئ هغه على وجه الغلبه وړی دی، اوكه له مسلمانانو څخه يو يادوه دامام له اجازې بغير دلوټولوپه نيت دارالحرب ته داخل شول اوله هغه ځای څخه يې يوشئ راوړی نوله هغه څخه به خمس نه اخيستل كيږي، ولې چې دوئ بې له شكه مال مباح راوړی دی ،مګرعلى وجه الغنيمة (په دې ډول چې پردښمن په غالبه كيدلوسره يې وړی وي )نه ده وړی بلكه په غلاكولوسره يې وړی دی .

(۱۲) كه دجنګ پروخت باندي امام يوچاته څه انعام وركړي يادانعام وعده وكړي دمجاهدينو دزړه دلوړه ولولپاره مثلاداسي ووای،من قتل قتيلا فله سلبه،(يعني كوم كس چې كوم كافرقتل كړي نودهغه مقتول سامان به هغه ته وركول كيږي)نوپه دې كې څه حرج نشته بلكه مستحب دی، همداشان كه كومې ډلګۍ(كوچنی لښكر) ته داسي ووای چې د خمس له جلاكولو وروسته دغنيمت څلورمه برخه خاص ستاسي لپاره انعام ،نوداهم مستحب دی،ولې چې انعام وركول د مجاهدينو جهادته دامادە(تياررولو) كولو يوه طريقه ده،وقدقال الله تعالى ﴿حرض المؤمنين على القتال﴾(يعني مومنان پر جهاد باندي اماده كړه ) خمس جلاكول كوم شرط نه دی ولې چې ټول مال غنيمت پرطريقه دانعام مجاهدينوته وركول جائزدی.

(۱۳) البته مال غنيمت دارالاسلام ته له راوړلو اومحفوظ كولو وروسته امام صرف له خمس څخه يوچاته انعام مقرركولی شي،ولې چې په دارالاسلام كې په محفوظ كولوسره له باقي څلورو اخماسوسره اوس دغانمينوحق متعلق شوی دی البته په خمس كې دغانمينوهيڅ حق نشته په خمس كې دامام رأيه چليږي لهذاانعام هم له خمس څخه وركولی شي .

(۱۴ )كه امام دمقتول كافر داسبابو وعده له قاتل سره نه وه كړې نودهغه سامان هم دغنيمت له جملې څخه دی ، په هغه كې قاتل اوغيرقاتل ټول سره برابردي ،لقوله ﷺ لحبيب بن ابی سلمة ﴿ليس لک من سلب قتيلک الاماطابت به نفس امامک﴾(تاته دخپل امام له خوښۍ بغير دخپل مقتول دسلب حق نشته ) او همداراز داسامان دلښكرپه قوت باندي راوړل شوی دی نوله غنيمت څخه به شماروي .

(۱۵ ) اودمقتول له سلب څخه مراد دده دبدن جامې اودده سپرلۍ اودده سلاح ده ، همداشان دده دسپرلۍ زين اوغيره هم په سلب كې شامل دي.

## باب استيلاء الكفار

### داباب دكفارو دغلبې په بيان كې دی

دكفارو دغلبې دوه صورتونه دي ،كافران پرمسلمانانو باندي غالب شي،ياكافران پرنورو كافرانو غالب شي.په دې باب كې يې ددواړو تفصيل بيان كړی دی،كله چې مصنف رحمه الله دمسلمانانو پركافرانو دغالب كيدلو څخه فارغ شو، نودهغه عكس يې شروع كړ،ددې باب دتأخيروجه داده ، چې دكفارو په غالب كيدلو كې كراهة دی.

(۱) سَبَى التُّرْکُ الرُّومَ وَأَخَذُوا أَمْوَالَهُمْ مَلَکُوهَا (۲) وَمَلَکْنَا مَا نَجِدُهُ مِنْ ذٰلِکَ إِنْ غَلَبْنَا عَلَيْهِمْ (۳) وَإِنْ غَلَبُوا عَلَى أَمْوَالِنَا وَأَحْرَزُوهَا بِدَارِهِمْ مَلَکُوهَا (۴) وَإِنْ غَلَبْنَا عَلَيْهِمْ فَمَنْ وَجَدَ مِلْکَهُ قَبْلَ الْقِسْمَةِ أَخَذَهُ مَجَّانًا (۵) وَبَعْدَهَا بِالْقِيمَةِ (۶) وَبِالثَّمَنِ لَوِ اشْتَرَاهُ التَّاجِرُ مِنْهُمْ (۷) وَإِنْ فَقَأَ عَيْنَهُ وَأَخَذَ أَرْشَهُ

**ترجمة**: بندي كړل دترک والاوو روم والا او وايخيستل د هغوئ مالونه نودوئ دهغوئ مالكان كيږي، اومونږ مالكان گرځو دهغه شئ چې ويې موندوله دي ځخه كه مونږ غالب شوپردوئ باندي ، اوكه دوئ غالب شول زمونږپرمالونوباندي اوپه دارالحرب كې يې محفوظ كړل نودوئ دهغومالكان گرځي ، اوكه مونږ غالب شوپردوئ نوكوم ځوک چې خپل شئ وموندي له تقسيم ځخه وړاندي نودى دي هغه بغيرله قيمته اخلي ،اوله تقسيم ځخه وروسته دي په قيمت باندي ،اوپه ثمن سره كه كوم تاجرله دوئ ځخه اخيستي وي ،كه ځه هم دهغه سترگې ايستل شوي وي اودهغې تاوان اخيستل شوى وي.

**تشريح**:(۱)كله چې دتركان (مراد دترک كافرآن دي)مثلا پر روميانو(مراددروم كافراندي)اندي غالب شي(يعني ديو كفري ملک خلک دبل كفري ملک پرخلگوباندي غالب شي )اوهغوئ بنديان كړي اومالونه تري واخلي نودترک والا ددي مالونومالكان گرځي،ولي چې داهل حرب مالونه مباح دي،اوپرمباح مالونوباندي په قبضه كولو سره قابض مالک گرځي ،مصنف صاحب ﷫ تركانوته دخپلې زمانې په اعتبار كافران ويلي دي ،چې په هغه زمانه كې دوئ حربي كافران وو.

(۲) بياكه مونږ پرتركانو(يعني پرغالب كافرانو) باندي غالب شوونودوئ هغه مالونه كوم چې دوئ له روميانو (مغلوب كافرانو) ځخه اخيستي دي كه مونږ هغه وموندل نوهغه زمونږ لپاره حلال دي ،ولي چې دا مالونه هم دتركانو له نورو مالونو سره ملحق شول ،بس ددوئ دنورو مالونو په شان داهم مونږته حلال گرځي.

(۳ )او كه كله كافران معاذالله زمونږ پرمالونوباندي غالب شول اوهغه يې لوټ كړل او دارالحرب ته يې يوړل نودوئ يې مالكان گرځي ،ولي چې دمالونوعصمت دشريعت له احكاموځخه يوحكم دى،اوكافران په دي احكامو مخاطب نه دي، لهذا دا مالونه ددوئ په حق كې غيرمعصوم دي ، نوپه دي وجه يې دوئ مالكان كيږي.

(۴ ) بياكه مسلمانان پرهغو كافرانو باندي غالب شول او پرهغه مالونو باندي يې قبضه وكړه كوم چې هغوئ له مسلمانانوځخه وړي وو ،نوكه دمال غنيمت له تقسيمدلوځخه وړاندي اصل مالكانوخپل دامالونه وموندل نودوئ دخپل دمالونه بغيرله كوم عوض ځخه واخلي ولي چې نبى كريم ﷺ حضرت ابن عباس ﷛ ته وفرمايل ،كه تاله تقسيم ځخه وړاندي وموندل نوهغه بلاعوض ستادي اوكه دي له تقسيم ځخه وروسته وموندل نوبيايه قيمت سره ستادي ،همدراز دمسلمان مالک قديم ملک دده بغيرده له خوښې زائل شوي وونودهغه په لحاظولوسره دده ته داخيستلوحق دى

(۵ )قوله وبعدهابالقيمة اى باخذبعدالقسمة بالقيمة ان شاء ،يعني كه دمال غنيمت له تقسيم ځخه ورسته مسلمانانوخپل مال له يومجاهدسره وموندى نواوس اصلي مالک ته په قيمت باندي دخپل مال داخيستلواختيارشته اوبلاقيمت نشته،لماروينا،همداشان له تقسيمدلوځخه وروسته چې له كوم

مجاهد سره پیدا شي له هغه شخه په مفت اخیستلو کې هغه ته ضرر دی، البته په قیمت سره په اخیستلو کې ددواړو طرفونو رعایت دی، په دي وجه اصل مالک ته دا اختیار ورکړل شوی دی.

(۶) قوله وبثمن لو اشتراه تاجر منهم ای یاخذ بالثمن لو اشتراه تاجر منهم، یعني که کوم تاجر دارالحرب ته ولاړ او دمسلمانانو دغه مالونه یې په قیمت سره واخیستل او دارالاسلام ته یې راوړل، نو لومړنیو مالکانو لره اختیار دی که یې خوښه وي نو تاجر ته دي هغو مالونو قیمت ورکړي او وادي خلي په کوم قیمت چې تاجر له کافرانو شخه اخیستي دي، او که یې خوښه وي پریدیږدي، ولی چې په مفت اخیستلو کې د تاجر ضرر دی، په دي وجه چې هغه ددي مال په عوض کې قیمت ورکړی دی هغه مال، فکان اعدال النظر فیما قلنا.

(۷) او که مذکورصورت په کوم غلام یا بل شي کې وي، نو هم یې مالک په هغه قیمت اخیستلی شي، په کوم قیمت چې تاجر اخیستی دی، که څه هم د غلام سترګه یوچا ایستلې وي او تاجر د هغې معاوضه هم اخیستی وي، ولی چې سترګه وصف دی او دوصف په مقابل کې ثمن نه وي، او د تاجر لپاره د هغې تاوان اخیستل صحیح دی، ځکه تاجر د غلام مالک شوی دی، او دده دا ملک صحیح دی.

(۸) فَإِنْ تَكَرَّرَ الأَسْرُ وَالشِّرَاءُ أَخَذَهُ الأَوَّلُ مِنَ الثَّانِي بِثَمَنِهِ ثُمَّ الْقَدِيمُ بِالثَّمَنَيْنِ (۹) وَلَا يَمْلِكُونَ حُرَّنَا وَمُدَبَّرَنَا وَأُمَّ وَلَدِنَا وَمُكَاتَبَنَا وَنَمْلِكُ عَلَيْهِمْ جَمِيعَ ذَلِكَ (۱۰) وَإِنْ نَدَّ إِلَيْهِمْ جَمَلٌ فَأَخَذُوهُ مَلَكُوهُ (۱۱) وَإِنْ أَبَقَ إِلَيْهِمْ قِنٌّ لَا

**ترجمه:** او که مکرر شو قید کیدل او رانیول نو وادي خلي اول مشتري له دوهم شخه په عوض د ثمنو بیا دي اول مالک دواړه ثمنه ورکړي او وادي خلي، او کافر مالک نه ګرځي زموږ د ازاد او د مدبر او د ام ولد او زموږ د مکاتبینو، او موږ مالکان ګرځو ددوئ ددي ټولو، او که وتښتیدی کوم اوښ ددوئ طرف ته او دوئ هغه ونیوی نو دوئ د هغه مالکان ګرځي، او که وتښتیدی غلام دوئ ته نو نه (یعنی مالکان یې نه ګرځي).

**تشریح:** (۸) که د غلام قید کیدل او د تاجر اخیستل دوه ځله وشو ل مثلاً د مسلمانانو کوم غلام دښمن قید کړی او وړی وو بیا په هغه ځای کې کوم مسلمان تاجر اخیستی وو او دارالاسلام ته یې راوستی بیا دوهم ځل دښمن هغه په قید کولو سره دارالحرب ته ویوړی او س دوهم ځل کوم بل تاجر هغه واخیستی نو په دي صورت کې د هغه غلام بندي کیدل او اخیستل مکرر دي نو ده لره اول ځل اخیستونکی دوهم ځل اخیستونکی ته په قیمت ورکولو سره اخیستی شي اوله دي شخه وروسته اصل مالک د دواړو قیمتونو په ورکولو سره له دي اول تاجر شخه اخیستی شي ولی چې اولنی تاجر ددي غلام دوه ځله قیمت ورکړی دی.

(۹) او که کفار پر موږ غالب شول (اعاذنا الله) نو دوئ زموږ د ازاد او مدبر او ام ولد او مکاتب دنیارینه او ښځو مالکان نه شي کیدلای، ولی چې مدبر او ام ولده او مکاتب من وجه ازاد دي او حر من کل الوجوه ازاد دی، او ازاد خو معصوم بنفسه وي، او د معصوم او محفوظ دوئ نه شي مالکان کیدلای، او که موږ پر دوئ باندي غالب شو نو موږ ددوئ د مدبر وغیره د ټولو مالکان ګرځو ولی چې د دوئ د کفر په وجه سره شریعت ددوئ عصمت ساقط کړی دی، فنملک علیهم.

(۱۰) که زموږ اوښ یا یو بل حیوان وتښتیدل دار الحرب ته ولاړ ی او کافرانو ونیوی نو دوئ دهغه مالکان ګرځي، ځکه دار الحرب ته دتللو په وجه سره دمالک له قبضې څخه ووتی، او حیوان پرخپل ځان اختیار نه لري لهذا معصوم هم نه دی، بس نو د مال مباح کیدلو له کبله دوئ دهغه مالکان ګرځي.

(۱۱) او که دکوم مسلمان غلام وتښتیدی او دار الحرب ته ولاړ او کافرانو هغه ونیوی نو دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد کافر دهغه مالک نه ګرځي، ولې چې دار الحرب ته په تللو سره د مولی قبضه له ده څخه زائله شوه نو دده ذاتي اختیار پر خپل ځان ظاهر شو، نو دی دمعصوم بنفسه کیدو په وجه سره دملک محل پاتې نه شو، په دې وجه هغوئ دده مالک نه ګرځي، او دصاحبینو رحمهما الله په نزد کافر دده مالک ګرځي، صاحبین رحمهما الله غلام پر نورو مالونو باندې قیاس وي.

ف: دامام ابو حنیفه قول راجح دی، لما في الملتقى: لايملكون عبدا ابق اليهم فاخذه مالكه بعد القسمة مجانا لكن يعوض عنه من بيت المال، قال العلامة الحصكفي: عن ابي حنيفة وهو الصحيح كما في القهستاني عن المضمرات وعندهما هو كالمأسور فيملكونه بالاستيلاء، وقال الشيخ عبد الحكيم الشهيد: والصحيح قول الامام ابي حنيفة صرح به القهستاني معزيا الى المضمرات (هامش الهداية: ۲/۵۵۹)

(۲) وَلَوْ أَبَقَ بِفَرَسٍ وَمَتَاعٍ فَاشْتَرَى رَجُلٌ كُلَّهُ مِنْهُمْ أَخَذَ الْعَبْدَ مَجَّانًا وَغَيْرَهُ بِالثَّمَنِ (۱۳) وَإِنْ ابْتَاعَ مُسْتَأْمَنٌ عَبْدًا مُؤْمِنًا وَأَدْخَلَهُ دَارَهُمْ (۱۴) أَوْ أَمِنَ عَبْدٌ ثَمَّةَ فَجَاءَنَا أَوْ ظَهَرْنَا عَلَيْهِمْ عَتَقَ

**ترجمة**: او که غلام وتښتیدی له آس او سامان سره، بیا یو شخص دا ټول له دوئ څخه واخیستل، نو وادې خلي غلام مفت او له ده څخه علاوه په ثمن باندې، او که واخیستی مستأمن کوم مؤمن غلام او دار الحرب ته یې ویوړی، یا ایمان راووړ یو غلام هلته بیا موږ ته راغلی، یا موږ غالب شو پر دوئ باندې نو غلام ازادیږي

**تشریح**: (۱۲) که زموږ کوم غلام دار الحرب ته وتښتیدی او له خپل ځان سره یې آس او سامان هم یو ووړ هلته کافرانو دی له آس او سامان سره قیدي کړ بیا کوم شخص دا غلام له اسبابو سره له دوئ څخه رانیوی او دار الاسلام ته یې راوړل، نو دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد دغلام مخکني مالک ته اختیار دی چې غلام مفت واخلي او دآس ودسامان قیمت دې ورکړي وادې خلي، او دصاحبینو رحمهما الله په نزد غلام له تولو اسبابو سره په قیمت اخیستلای شي، حالت داجتماع پر حالت انفراد قیاس وي، ولې چې له غلام او اسبابو څخه دهریوه جلا جلا دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد همدا حکم دی چې اصلي مالک غلام بې قیمته او سامان په قیمت باندې اخیستلای شي، نو د حالت اجتماع به هم همدا حکم وي.

(۱۳) که کوم حربي کافر په امن اخیستلو سره دار الاسلام ته راغی دلته یې یو مسلمان غلام رانیوی دار الحرب یې یووړ ی نو دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد دار الحرب ته په داخلیدو سره هغه ازادیږي، او دصاحبینو په نزد نه ازادیږي، ځکه چې دمومن غلام دکافر له ملک څخه دایستلو لپاره په دار الاسلام کې صرف یو صورت وو یعني هغه دده پر خرڅولو مجبوره کول، مګر دار الحرب ته دتللو له کبله دمسلمانانو دامام پر هغه باندې ولایت جبر ختم شو، لهذا دده مخکنی ملک به برقرار پاته کیږي.

دامام ابو حنیفة رحمه الله دلیل دادی چې مسلمان دکافر له ذلت څخه خلاصول واجب دی، نو دده دخلاسولو لپاره به تباین دارین دعلت دعتق یعني اعتاق قائم مقام بلل کیږي، لکه څرنګه چې په دار الحرب

کې دزوجینو څخه دیوه دمسلمان کیدو ورسته دري حیضه دطلاق قائم مقام ګرځول کیږي ، ترڅو مسلمانه ښځه یامسلمان سړی دکافرله ذلت څخه خلاص شي.

**ف:** دامام ابو حنیفة رحمه الله قول راجح دی ،لماقال المفتی غلام قادر النعمانی:القول الراجح هو قول الامام(القول الراجح: ۱/ ۳۸۹)

(۱۴) که دکوم حربي کافر غلام په دارالحرب کې مسلمان شو بیاموږ ته راغی ،یاهلته په دارالحرب کې وو چې مسلمانان پر دارالحرب باندي غالب شول نوداغلام ازاد دی ،ځکه له ابن عباس څخه روایت دی چې داهل طائف څخه څو غلامان راووتلې او دنبی کریم ﷺ لښکرته راغلی وو نونبی ﷺ دهغوئ دازادی حکم یې ورکړی وو ،اووې فرمایل چې دوئ دالله تعالی ازادکړل شوي دي.

## بَابُ الْمُسْتَأْمَنِ

### داباب دمستامن په بیان کې دی

مستامن له استیمان څخه دی په معنی سره دامن غوښتلو دی،اوپه اصطلاح کې کوم کافرچې دارالاسلام ته دسفر دخصوصي اجازت په حاصلولوسره راشي ،یامسلمان دارالحرب ته دداخلیدلو اجازت حاصل کړي اوولاړشي،ده ته مستامن ویل کیږي،استیمان یې له استیلاء څخه په دي وجه ورسته ذکر کړ چې استیلاء له غلبي څخه کیږي ،اواستیمان له غلبی څخه ورسته وي.

(۱) دخل تاجر ثَمَّة حَرُمَ تَعَرُّضُهُ لِشَيْءٍ منهم (۲) فَلَوْ أَخْرَجَ شَيْئًا مَلَكَهُ مِلْكًا مَحْظُورًا فَيَتَصَدَّقُ بِهِ (۳) فَإِنْ أَدَانَهُ حَرْبِيٌّ أو أَدَانَ حَرْبِيًّا أو غَصَبَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ وَخَرَجَا إِلَيْنَا لم يَقْضِ بِشَيْءٍ (۴) وَكَذَلِكَ لو كَانَا حَرْبِيَّيْنِ وَفَعَلَا ذلك ثُمَّ اسْتَأْمَنَا (۵) وَإِنْ خَرَجَا مُسْلِمَيْنِ قَضَى بِالدَّيْنِ بَيْنَهُمَا لَا بِالْغَصْبِ

**ترجمه:** داخل شوزموږ تاجر دارالحرب ته نوحرام دی ده لره تعرض کول ددوئ یوشئ ته ،بیاکه یې راوړي هغه یوشئ نودهغه مالک ګرځي په ملک ممنوع سره نوهغه دي صدقه کړي ،اوکه قرض ورکړ ده ته یوحربی کافر یاده قرض ورکړ حربی ته یایې کوم شئ غصب کړ دوئ یو له بل څخه بیادواړه موږ ته راغلل نوقاضی به هیڅ فیصله نه کوي ، همدا شان که دوو حربیانو کافرانو دغه کار وکړ بیایې امن واخیست دلي راغلل ،اوکه هغه دوه (حربیان) راغلل په داسې حال کې چې مسلمانان شوي وو نو فیصله به کیږي ددوئ په منځ کې دقرض نه دغصب.

**تشریح** :که کوم مسلمان دتجارت کولو لپاره دارالحرب ته داخل شو نودده لپاره هلته ددوئ یوشئ ته تعرض کول اوراوړل حرام دی،ولی چې ده په دارالحرب کې دداخلیدلولپاره له دوئ څخه په امن اخیستولوسره داعهداوپیمان وکړچې دوئ ته به هیڅ قسم ضررنه رسوي ، اوس دده دهغوئ یوشي ته تعرض کول غدر دی، اوغدر کول حرام دی ،په حدیث شریف کې دغدر مذمت (بدوالی) راغلی دی.

(۲) بیا که ده له هغوئ سره غدر وکړ، ددوئ مال یې راواخیست دارالاسلام ته یې راوو ړ نوداشخص دهغه مال مالک ګرځي ، ځکه ددوئ مالونه مباح دي ، اوپرمال مباح باندي چې دکوم څوک

قبضه وکړي هغه يې مالک ګرځي، مګر دده دغه ملک خبيث دی، ځکه چې په غدر يې حاصل کړی دی، لهذا ده ته به حکم ورکول کيږي چې دا مال صدقه کړي او په خپله دې نه مصرفه وي.

(۳) که کوم حربي کافر پر دغه تاجر باندې يو شی په پور خرڅ کړي، ياده پر حربي باندې په پور خرڅ کړ، يا په دوئ کې يوه له بل څخه يو شی غصب کړ، بيا دوئ دواړه دارالاسلام ته راغلل، او زموږ له قاضي څخه يې فيصله وغوښته، نو زموږ قاضي به د دوئ په منځ کې هيڅ فيصله نه کوي، د پور په صورت کې به په دې وجه فيصله نه کوي چې دقاضي حکم په هغه وخت کې نافذ دی کله چې قاضي ته ولايت حاصل شي، حالادا چې دپور ورکولو پروخت په دارالحرب کې د اوسيدلو له کبله زموږ قاضي ته ولايت حاصل نه و، خاص بيا پر حربي باندې، نو اوس هم قاضي ته ولايت حاصل نه دی، ځکه چې حربي مستامن دخپلو تير شوو افعالو په باره کې پر خپل ځان داسلام داحکامو التزام نه دی کړی، باقي دغصب په صورت کې به زموږ قاضي په دې وجه فيصله نه کوي چې په دارالحرب کې کيدلو له کبله مال معصوم نه دی، لهذا غاصب دمال مالک شوی دی، البته که غاصب مسلمان وو نوده ته به دمغصوبه شئ حربي ته دورکولو امر کيږي ولی چې ده په غدر کولو سره ګناه کړي ده.

(۴) همداشان که دو حربيانو په خپل منځ کې داسې معامله وکړه، يعني يو حربي پر بل حربي باندې يو شی په پور خرڅ کړ، بيا دوا ړو امن واخيست دارالاسلام ته راغلل او موږ له قاضي څخه يې فيصله وغوښته نو زموږ قاضي به د دوئ په منځ کې هيڅ فيصله نه کوي.

(۵) او که دا حربيان دواړه مسلمانان شول بيا دارالاسلام ته راغلل، نو زموږ قاضي به د دوئ په مابين کې دقرض د مسئلې فيصله کوي، ځکه چې هلته د دوئ دقرضو معامله د دواړو درضامندي په وجه صحيح شوې وه، او دفيصلې پروخت قاضي لره پر دوئ باندې ولايت هم حاصل دی، ولی چې په مسلمانيدلو سره دوئ پر ځان باندې داسلام داحکامو التزام وکړ، البته دغصب په صورت کې به زموږ قاضي د دوئ په منځ کې فيصله نه کوي، ځکه چې په دارالحرب کې چې يو حربي دبل حربي مال غصب کړي نو هغه يې مالک ګرځي، ولی چې پر مال مباح باندې دقبضه کولو په وجه سره قابض مالک ګرځي، او د حربي دغصب له کبله مالک کيدل صحيح دي، او په هغه کې هيڅ خبث نشته چې ديرته ورکولو حکم ورته وشي، په خلاف د مسلمان ځکه هغه ته به امر کيږي چې مال مغصوب بيرته حربي ته ورکړي، ولی چې ده په غدر کولو سره ګناه کړي ده.

(۱) مُسْلِمَانِ مُسْتَأْمَنَانِ قَتَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ تَجِبُ الدِّيَةُ فِي مَالِهِ (۷) وَالْكَفَّارَةُ فِي الْخَطَإِ (۸) وَلَا شَيْءَ فِي الْأَسِيرَيْنِ سِوَى الْكَفَّارَةِ فِي الْخَطَإِ (۹) كَقَتْلِ مُسْلِمٍ مُسْلِمًا أَسْلَمَ ثَمَّةَ

**ترجمة**: له دو مسلمانو مستأمنينو څخه يوه هغه بل قتل کړ نو واجيبږي ديت ده په مال کې، او کفارة واجيبږي دخطاء په صورت کې، او هيڅ شی نشته په دو قيديانو کې له نه رې څخه علاوه دقتل خطاء په صورت کې، لکه څرنګه چې د مسلمان مسلمان لره قتل کول کومو چې هلته اسلام راوړی وي.

**تشريح**: که دو مسلمانانو امن واخيست او دارالحرب ته داخل شول بيا هلته په دوئ کې يوه هغه بل په قصد يا په خطاء سره قتل کړ نو دمقتول ديت دقاتل په مال کې واجيبږي، ولی چې مقتول ته چې په دارالاسلام

کې دځان کوم حفاظت حاصل وو هغه دارالحرب ته په عارضي ډول په تللو سره نه ساقطيږي، لهذا دده دقتل په بدله کې ديت واجبيږي ،هو قصاص نه واجبيږي ،ځکه چې قصاص هلته واجبيږي په کوم ځای کې چې دمسلمانانو امام ته تصرف حاصل وي،ځکه چې قصاص اخيستل بې له تصرف څخه ممکن نه دی ، حال دا چې په دارالحرب کې امام ته تصرف حاصل نه دی.

(۷ )قوله والكفارة في الخطاء اى وتجب الكفارة فى قتل الخطاء ، يعني که په مذکوره صورت کې قاتل خپل ملګری په خطاء قتل کړی وو ،نوپرقاتل باندي کفاره هم لازمه ده ،ځکه ارشادباري تعالی دی (وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ الخ) (يعنی چاچې يو مؤمن په خطاء سره قتل کړ نوپرهغه (قاتل )ديو مسلمان غلام ازادول واجب دي) مطلق دی په دارالاسلام پوري خاص نه ده لهذا په دار الحرب کې هم دقتل خطاء په صورت کې کفاره لازميږي .

(۸)که دوه مسلمانان په دارالحرب کې بنديان وو په دوئ کې يوه هغه بل قتل کړنو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد پرقاتل هيڅ شئ واجب نه دی يعنی نه قصاص واجب دی نه ديت ،دصاحبينو په نزد که قتل خطاء وي.اوکه قتل عمدوي په دواړه صورتونو کې ديت واجب دی ولی چې دبندپه وجه سره دهغوئ عصمت نه ختميږي لکه په امان اخستلو سره په تللوچې عصمت نه ختميږي .دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی چې دقيد له کبله مسلمان داهل الحرب تابع شو همداوجه ده چې دهغوی په اقامت سره دی هم مقيم کيږي اودهغوئ په سفرسره دی هم مسافر بلل کيږي لهذا دهغه عصمت نفس ختميږي البته که قاتل خطاء قتل کړی وي نو پر قاتل کفاره واجبيږي ،ولی چې دپه هرحال دګناه کار کړی دی لهذا کفاره لازمه ده .

**ف**:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی ،لان قوله قول المتون والشروح .وقال العلامه ابن نجيم:ولابى حنيفه ان بالاسر صارتبعا لهم لصيرورته مقصورا فى ايديهم ولهذا يصير مقيمابا قامتهم (البحر الرائق:۵\۱۰۰ )

(۹)دمسلمانانو بنديانو په دارالحرب کې يو دبل قتل کول داشان دي لکه په دارالحرب کې چې يو مسلمان بل داسې مسلمان قتل کړي چې هلته مسلمان شوی وي او دارالاسلام ته نه وي راغلی نود هغه پر قاتل باندي هم نه قصاص واجب دی نه ديت ولی چې داهم داهل الحرب تابع دی داراسلام ته په راتلوسره هغه عصمت نفس نه دی حاصل کړی هو دقتل خطاء په صورت کې پرقاتل کفاره واجب ده لماقلنا ،په دي صورت کې زموږ دائمه و اتفاق دي .

## فصل

دافصل دمستامن دباقي احکامو په بيان کې دی

په دي فصل کې خاص دکافر مستامن داحکامو ذکر کړي دي .او دکافرمستامن داحکامو دمسلمان مستامن تراحکامو وروسته ذکرکولو وجه ظاهره ده .

(۱)لايمكن مستأمن فينا سنة وقيل له ان اقمت سنة وضع عليك الجزية (۲)فان مكث سنة فهو ذمي فلم يترك ان يرجع اليهم (۳)كمالو وضع عليه الخراج او نكحت ذميا (۴)لاعكسه

**ترجمه**:اوسيدوته به نه پرېښودل کيږي مستامن له موږسره يو کال،اوويل کيږي به ده ته چې که تېول کال پاتي شوي نومقرربه کړای شي پرتاجزيه ،نوکه دی پاتي شوله دي څخه وروسته پوره کال نوذمي ګرځي نونه

به پرېښودل کېږي چې دی ولاړشي دارالحرب ته ،لکه چې پرده مقررشي خراج یانکاح وکړي ښځه له ذمی سره، نه ددي عکس .

**تشریح** :(۱)که حربی کافرد امان په اخیستلوسره دارالاسلام ته داخل شي نو هغه دي په دارالاسلام کې یو کال یاله دي څخه زیات نه پرېښودل کېږي ولی چې چیرته دا کس دحربیانو معاون جوړنه شی چې دلته جاسوسی وکړي په کوم کې چې دمسلمانانو ضرر دي بلکه هغه ته دامان ورکولو پر وخت به امام هغه ته وایي چې که ته یو کال دلته اوسیږي نو زه په ته باندي جزیه مقرره وم .جزیه هغه مال دی چې له حربی څه دهغه دوینو په عوض کې اخستل کیږي .

(۲)بیاکه هغه یو کال یازیات تریوه کال په دارالاسلام کې پاتي شو نوهغه ذمی ګرځي او له هغه څخه به جزیه اخستل کیږي ولی چې دلته دکال داوسیدلو په وجه سره هغه په خپله عملاًددي التزام وکړ، اوس به هغه دارالحرب ته دتللو لپاره نه پرېښودل کیږي،ولی چې عقدذمه نه شي ماتیدلای په دي وجه چې په دي شان به جزیه ختمه شي او دهغه اولاد به دمسلمانانو په خلاف جنګیږي په کوم کې چې دمسلمانانونقصان دی .

(۳)قوله کمالو وضع علیه الخراج ای کمالایترک ان یرجع الیهم لو وضع علیه الخراج .یعنی که مستامن ترکال زیات دلته پاتي شو نو داداسي ده لکه چې یو مستامن دلته په دارالاسلام کې ځمکه واخلي اود امام المسلیمن له طرف څخه په هغه باندې خراج مقرر کړل شی نو په دي صورت کې هم هغه دارالحرب ته د تللو لپاره نه پرېښودل کیږي ولی چې دځمکې خراج دسر دجزیه په شان دی ګواکې هغه دسرجزیه ورکول شروع کړه لهذا نو کله چې هغه خراج پر ځان لازم کړ نو ګواکې هغه په دارالاسلام کې داوسیدلو التزام وکړ په دي وجه به او س هغه نه پرېښودل کیږي لماقلنا ،او همداشان که یوي ښځې امان واخیست دار الاسلام ته راغله دلته په راتلوسره هغې له یو ذمی سره نکاح وکړه نو اوس به هغې ته هم دارالحرب ته دتللو اجازه نه ورکول کیږي ولی چې هغه دزوج په تابع کیدلوسره دلته داوسیدلو التزام وکړ لهذا او س به هغه دارالحرب ته دتللو لپاره نه پرېښودل کیږي .

(۴)لیکن که ددي عکس وشو یعنی که یو مستامن نارینه دلته راغی له یوي ذمیي ښځې سره یې نکاح وکړه نوهغه به دارالحرب ته له تلک څخه نه منع کیږي ولی چې هغه په نکاح کولوسره دلته داوسیدلو التزم نه دی کړی په دي وجه چې ده لره ممکنه ده چې دي ذمیي ښځې ته طلاق ورکړي اوله دي ځایه ولاړشي .

(۵)فَإِنْ رَجَعَ إِلَيْهِمْ وَلَهُ وَدِيعَةٌ عِنْدَ مُسْلِمٍ اَوْ ذِمِّيٍّ اَوْ دَيْنٌ عَلَيْهِمَا حَلَّ دَمُهُ (۶)فَإِنْ أُسِرَ اَوْ ظُهِرَ عليهم فَقُتِلَ سَقَطَ دَيْنُهُ وَصَارَتْ وَدِيعَتُهُ فَيْئًا (۷)وَإِنْ قُتِلَ ولم يُظْهَرْ عليهم اَوْ مَاتَ فَقَرْضُهُ وَوَدِيعَتُهُ لِوَرَثَتِهِ

**ترجمه** :نو که هغه ولاړی دکفاروطرف ته اودده امانت وو له کوم مسلمان [illegible] یادده قرض وو دهغوئ پرذمه نودده وینه حلاله ده ،بیاکه بندي کړای شو یاپردوئ غلبه حاصله شوه اوسغه قتل کړای شونو ساقطیږي دهغه قرض ،او دهغه امانت غنیمت ګرځي ،اوکه هغه قتل کړای شو حال داچې غلبه نه ده موندل شوي یاپه خپل مرګ سره مړشونو دهغه قرض او امانت دهغه وارثانولره دي .

**تشریح:**(۵)که یو حربی کافر امان واخیست دارالاسلام ته راغی بیابیرته دارالحرب ته ولاړی او په دارالاسلام کې له یو مسلمان یاذمی سره خپل کوم امانت پرېښود یایې خپل څه قرض دیو مسلمان یاذمی پرذمه پرېښود نو اوس دبیرته تللو په وجه دهغه وینه مباح ګرځي ولی چې له دي ځایه دتللوپه وجه سره دده امان ختم شو.

(۶)او دهغه چې کوم مال په دارالاسلام کې دی هغه مال ته تعرض کول(یعنی وړل)دهیچالپاره حلال نه دي ولی چې دمال په حق کې دهغه امان نه دختم شوی البته هغه مال په خطرکې دی یعنی موقوف ده ولی چې فی الحال که څه هم په معصوم لاس کې دی لیکن که دی دمسلمانانو سره بندي شو یامسلمانان په دارالحرب غالب شول اوهغه حربی یې قتل کړنو ددي ځای(یعنی په دارالاسلام)پر خلګوچې دهغه حربی کومې قرضې دي هغه ساقطیږي ولی چې د مقروض قبضه په نسبت دعامو مسلمانانو دقبضې په هغه مال باندې له وړاندې څخه ده نو په دي وجه به په هغه مال په ده پوري مختص وي نو قرض ساقطیږي.

(۷)او کوم امانت چې هغه له مسلمان یاذمی سره ایښی وو هغه اوس فئ(یعنی غنیمت)ګرځي ولی چې حکمادا مال په خپله دهغه په لاس کې وو په دي وجه چې دمودَع قبضه دمودِع د قبضې په شان ده او په قتل کولو یابندي کولو سره دهغه په قبضه کې موجود مال غنیمت ګرځي لهذا دا مال هم غنیمت ګرځي.

(۸)او که داحربی صرف قتل کړای شو او مسلمانان په دارالحرب غالب نه شول نو دهغه چې کوم قرض یاامانت په دارالاسلام کې دی دهغه وارثانوته به ورکول کیږي،او همداشان که هغه په خپله مړشو نو هم همداحکم دی ولی چې کله دهغه ذات غنیمت نه شو نو دهغه مال به هم غنیمت نه وي ولی چې دارالاسلام ته دراتللو لپاره چې هغه کوم امان اخیستی وو هغه امان دهغه دمال په حق کې اوس هم باقی دی لهذا دهغه قرض اوودیعت دهغه دوارثانودي ولی چې دهغه ورثه دهغه قائم مقام دي.

(۹) وَإِنْ جَاءَنَا حَرْبِيٌّ بِأَمَانٍ وَلَهُ زَوْجَةٌ لَنَا وَوَلَدٌ وَمَالٌ عِنْدَ مُسْلِمٍ وَذِمِّيٍّ وَحَرْبِيٍّ فَأَسْلَمَ هُنَا ثُمَّ ظُهِرَ عليهم فَالْكُلُّ فَيْءٌ (۱۰) وَإِنْ أَسْلَمَ ثَمَّةَ فَجَاءَنَا فَظُهِرَ عليهم فَوَلَدُهُ الصَّغِيرُ حُرٌّ مُسْلِمٌ وما أَوْدَعَهُ عِنْدَ مُسْلِمٍ او ذِمِّيٍّ فَهُوَ لَهُ وَغَيْرُهُ فَيْءٌ (۱۱) وَمَنْ قَتَلَ مُسْلِمًا خَطَأً لَا وَلِيَّ لَهُ او حَرْبِيًّا جَاءَنَا بِأَمَانٍ فَأَسْلَمَ فَدِيَتُهُ على عَاقِلَتِهِ لِلْإِمَامِ (۱۲) وفي الْعَمْدِ الْقَتْلُ او الدِّيَةُ لَا الْعَفْوُ

**ترجمه:** که راغی موږته حرب په امن اخیستلو سره،او دهغه په دارالحرب کې ښځه اوبچی دی او دهغه له مسلمان اوذمی اوحربی سره مال دی نو اسلام قبول کړهغه دلته بیاغلبه وموندل شوه پرکفارونو داټول غنیمت دي،او که هلته مسلمان شو بیاموږته راغی بیاپرکفاروغلبه وموندل شوه نودده کوچنی بچی به ازادمسلمان وي اوکوم څه چې ده امانت ایښي دي له مسلمان یاذمی سره نو هغه دهغه دي او له دي څخه علاوه ټول غنیمت دي،اوچاچې کوم داسي مسلمان خطاءقتل کړچې دهغه کوم ولی نه وي یایې داسي کافرقتل کړکوم چې په امن اخیستلو سره موږته راغلی وو بیایې اسلام قبول کړی وونو دهغه دیت دهغه پرعاقله دی امام المسلمین ته به ورکول کیږي،اوپه عمداقتل کولو کې قصاص دی یادیت دی نه عفوه.

**تشریح:**(۹)که یو حربی امان واخیست دارالاسلام ته راغی حال داچې په دارالحرب کې دهغه ښځه او ماشومان دي اوهلته دده مال دی چې له هغه څخه څه دکوم مسلمان سره امانت دی اوه له کوم ذمی سره او څه له کوم حربی سره ودیعت دی بیاهغه حربی دلته مسلمان شوبیامسلمانان په دارالحرب غالب شول نو ددي

حربي ټول مال به غنيمت وي دده دبنځې اوبالغ اولادغنيمت والى خوظاهردى ولى چې داكسان حربي كافران دي ددي نوي مسلمان شوى تابع نه دي لهذا غنيمت دي باقى كوچنى اولادپه دي وجه غنيمت دى چې هغه په دي وخت كې دپلارتابع نه دي لهذادده كوچنى اولادبه هم غنيمت وي ،همداشان داسلام په وجه سره دده نفس خومحفوظ شومگردتبائن دارين په وجه سره به دده مال محفوظ نه وي لهذادده مال به هم غنيمت وي .

(۱۰)او كه داحربى لومړى په دارالحرب كې مسلمان شو بيادارالاسلام ته راغى بيامسلمانان پرهغه ملک قابض شول نوددي كس نابالغ اولاددپلارپه تابع كيدلوسره ازاداومسلمان دي ولى چې دده داسلام راوړلوپروخت دااولاددده په قبضه اوولايت كې ووپه دي وجه چې تبائن دارين نشته ،اودده چې كوم مال له مسلمان ياذمى سره وديعت ايښى دى هغه به اوس هم دده وي ولى چې هغه په محترمه قبضه كې دى په دي وجه چې دقابض قبضه دده دذاتى قبضې په شان ده اوله دي دووقسمه مالونوڅخه علاوه دده پاتې مال مثلاكوم چې دحربى په قبضه كې وي نوهغه غنيمت دى ولى چې دحربى په قبضه كې موجودمال په محترمه قبضه كې نه دى .

(۱۱)كه چاكوم داسې مسلمان خطاءقتل كړچې دهغه يووارث هم نه وي ياداسې كوم حربى چې هغه په امان اخيستلوسره داراسلام ته راغلى ووبيادلته مسلمان شوى ووچاقتل كړنودهغه ديت دقاتل پرعاقله واجب دى ولى چې ده معصوم نفس قتل كړى دى اوڅرنگه چې دمقتول كوم وارث نشته لهذاعاقله به داديت امام المسلمين ته اداءكوي بيابه يې امام المسلمين به بيت المال كې جمع كوي ،اوكه هغه عمداًقتل كړى وي نوامام المسلين لره اختياردى كه يې خوښه وي نوقاتل دي قصاصاًقتل كړي ولى چې ده معصوم نفس قتل كړى دى اودمقتول ولى په دي وخت كې امام المسلمين دى لقوله ﷺ السلطان ولى من لاولى له (يعنى سلطان دهغه ولى دى دچاچې هيڅ ولى نه وي )،اوكه يې خوښه وي نوپه صلح كولوسره دي ديت واخلي ولى چې كله كله ديت اخيستل داهل اسلام لپاره ډيرمفيدوي كه څه هم په قصاص اخيستلوكې دانزجارفائده ده ،اوديت اخيستل دصلح په ډول دي كه نه نو دقتل عمدموجب قصاص اخيستل متعين دى .

(۱۲)البته امام المسلمين ته دمعاف كولواختيارنشته ولى چې دلته له قاتل څخه په ديت اخيستلوكې دټولومسلمانانوحق دى اودامام ولايت پرمصلحت مبنى دى ظاهره ده چې دعامو مسلمانانوحق بلاعوضه ساقطولوكې هيڅ مصلحت اوفائده نشته لهذاامام المسليمن ته معافولوحق نشته .

## باب العشروالخراج والجزية

داباب دعشر،خراج اوجزيه په بيان كې دى

ذمي چې په كوم شئ سره ذمي جوړيږي دهغه له بيانولو څخه ورسته مصنف رحمه الله هغه مالي وظائف بيانوي كومي چې له ذمي څخه له ذمي كيدلو څخه وروسته وصول كيږي ،په دې باب كې دعشرييان هم كړى دى ترڅو دظائف ماليه دبيان تكميل اوتتميم وشي .

ف:عشربضم العين ،دځمكي په حاصلاتوكې چې شريعت كوم زكوة مقرركړى دى هغه ته عشرويل كيږي،خراج هغه زرعي ټيكس دى كوم چې په بنيادي ډول سره داسلامي مملكت په غيرمسلم رعايا باندي دځمكي له حاصلاتو څخه دعشرپرځاى لګول كيږي،جزيه دهغه ټيكس نوم دى كوم چې په اسلامي مملكت كې له اوسيدونكوغيرمسلم ابادي (ذميانو)څخه فى كس(دنفرپرسر)ورل كيږي ،ددي ټيكس په وجه سره هغوئ ته هغه ټولي ښاري اسانتيا فراهم كيږي كومي چې دملك دنورو ښاريانو لپاره مهياشوي وي .

(۱)أَرْضُ الْعَرَبِ (۲)ومَا أَسْلَمَ أَهْلُهُ أَوْ فُتِحَ عَنْوَةً وَقُسِمَ بَيْنَ الْغَانِمِينَ عُشْرِيَّةٌ (۳)وَالسَّوَادُ (۴)ومَا فُتِحَ عَنْوَةً وَأُقِرَّ أَهْلُهَا عَلَيْهِ أَوْ فُتِحَ صُلْحًا خَرَاجِيَّةٌ (۵)وَلَوْ أَحْيَا أَرْضًا مَوَاتًا يُعْتَبَرُ قُرْبُهُ (۶)وَالْبَصْرَةُ عُشْرِيَّةٌ

**ترجمه**:دعربو ځمكي او هغه ځمكي چې اوسيدونكې يې مسلمان شوي وي يا هغه كومي چې قهراً فتح شوي وي او په غازيانو تقسيم شوي وي عشرى دي ،او سواد عراق ،او هغه كومي چې قهراً فتح شوي وي اودهغو اوسيدونكي پرهغو برقرارپاتي كړل شوي وي يا له هغو سره صلح شوي وي خراجي دي ، اوكه يې خرابه ځمكه اباده كړه نو اعتبار به وي دهغي دقرب،اوبصره عشرى ده .

**تشريح**:(۱)قوله ارض العرب ،دخپلو معطوفاتو سره مبتداء ده او ،عشرية ، دهغه لپاره خبرده .يعنى دعربو ټولي ځمكې عشرې دي ولى چې نبى كريم ﷺاو خلفاء راشدينو ﷺ له عربو څخه عشر اخيستى، او همدراز خراج ابتداء صرف په عقدذمه سره واجبيږي او دعربوله مشركانو سره عقدذمه صحيح نه ده بلكه دهغوئ لپاره اسلام راوړل يا قتل متعين دى، دعربو ځمكي په اوږدوالى كې له عذيب (د كوفي له كليو څخه ديو كلي نو م دى)څخه نيولي بيا په يمن كې دمهره (مهره په يمن كې ديو ځاى نو م دى ) ترډبري پو رې دى او، عرض(پلنوالى ) يې له ريګ روان ،څخه نيولى بياتر،حدشام ،پورې دى .

(۲)اود كوموځمكواوسيدونكي له دې څخه وړاندې چې امام پر دوئ قدرت حاصل كړي مسلمان شي نو دهغوئ دا ځمكي عشرى دي ،او همداشان كومه ځمكه چې امام قهراً فتح كړي او په مجاهدينو يې تقيسم كړي هغه هم عشرى دي ولى چې دمسلمانانو دځمكو وظيفه عشر ده او دمسلمان په حق كې عشر زيات لائق دى ولى چې په عشر كې دعبادت معنى موندل كيږي .

(۳)د،سواد عراق،ځمكې خراجي دي ولى حضرت عمر ﷺ كله عراق فتح كړ نو دصحابه كرام ﷺ په موجود ګۍ كې يې پر هغو خراج مقرر كړ ، همداراز دكفارو دځمكو وظيفه خراج دى .او عراقى ځمكې په،عرض،كې له عذيب (دبنو تميمو ديو چيني نوم دى )څخه نيولي بيا تر،عقبه حلوان (ديو ښار نو م دى)پورې دي،او په،طول،كې،له علث،(حدعراق باندې ديو كلي نو م ده)څخه شروع بياتر، عبادان،(دجزيرې نو م ده )پو رې دي .

(۴)کو مې ځمکې چې قهرا فتح شوي وي او بيا امام دځمکو اوسيدونکي په هغو ځمکو برقرار پرېښي وي،ياېې له هغوسره صلح کړې وي يعنی په دواړه صورتونو کې یې پرغانمينو نه وي تقسيم کړې نو دا ځمکې خراجې دي ولی چې خراج دکفارو دځمکو وظيفه ده او دکفارو لپاره همدامناسبه ده ولی چې په خراج کې دعقوبت معنی موجوده ده .

(۵)چاچې ارض موات (يعنی غير آبادي ځمکي )آبادي کړي نو دامام ابويوسف رحمه الله په نزد به ددي ځمکې دعشری ياخراجی کيدلو اندازه ددې په برابرواوقريبو ځمکوسره لګول کيږي که نژدې ځمکه خراجی وي نودابه هم خراجی وي اوکه هغه عشری وي نودابه هم عشری وي ولی چې قريب الشئ دشئ په حکم کې وي ،اوکه دعشری او خراجی په منځ کې وي نو هغه عشری ده .

ف:دامام محمد رحمه الله په نزد که يې ارض موات ،دباران په اوبو سره اوبه کړي وي ياېې څاه کښلي وي يادچينې په ايستلوسره اوبه کړي وي ياېې په درياب دجله يادرياب فرات ياپه داسي لوی نهر(ويالي ) سره اوبه کړي وي چې دهغې هيڅ مالک نه وي لکه سيحون اوجيحون نوداسي ځمکه عشری ده ولی چې ددي اوبه عشری دي اوکه يې په داسي لويونهرو(ويالو)سره اوبه کړي وي کوم چې عجمي بادهاشانو کيندلي وي لکه نهرملک کسری نوشيروان يانهريزدجرد نوداځمکه خراجی ده ولی چې اعتباراوبولره دی په دي وجه چې دحاصلاتوسبب اوبه وي.

ف:دامام ابويوسف رحمه الله قول راجح دی لمافی الشامية (قوله اعتبرقربه )ای قرب احياه ان کان الی ارض الخراج اقرب کانت خراجية وان کان العشر اقرب فعشرية.......عندابی يوسف واعتبر محمد الماء فان احياه بماء الخراج فخراجية والا فعشرية بحر وبالاول يفتی درمنتقی (ردالمحتار:۳\۲۸۴)

(۶)البته بصره دطرفينو په نزد عشري ده ،او دامام ابويوسف رحمه الله دمذهب مطابق قياس مقتضی ووچې بصره خراجي شي ولی چې قهراًفتح شوي ده اوددي اهل پردي برقرارپرېښودل شوی دی ،ليکن صحابه کرامو رضی الله عنهم پردي عشرمقررفرمايلي دی په دي وجه طرفينو قياس پرېښی دی .

(۷)وَخَرَاجُ جَرِيبٍ صَلَحَ لِلزَّرْعِ صَاعٌ وَدِرْهَمٌ (۸)وفِي جَرِيبِ الرَّطْبَةِ خَمْسَةُ دَرَاهِمَ وفِي جَرِيبِ الْكَرْمِ وَالنَّخْلِ الْمُتَّصِلِ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ (۹)وَإِنْ لم تُطِقْ مَا وُظِّفَ نُقِصَ (۱۰)بِخِلَافِ الزِّيَادَةِ

**ترجمه**:اوديوه جريب خراج کوم چې قابل زراعت وي يوه صاع اويودرهم دی ،اودترکاري په يوه جريب کې پنځه درهمه دي اودانګوروا وخرماووپه ګڼودرختوکې ديوه جريب خراج لس درهمه دي ،اوکه ده مقررمقدارمتحمل نه وونوکم دي کړای شي ،په خلاف دزيادت .

**تشريح**:خراج به هغه مقرر کيږي کوم چې حضرت عمر رضی الله عنه په اهل عراق مقرر کړی وو او هغه په دي حساب سره وو چې دهرجريب (دځمکې هغه قطعه چې ،طول ، يې هم شپيته (۶۰)ګزه وي او ،عرض،يې هم شپيته (۶۰)ګزه وي )کوم ته چې اوبه رسيږي اودزراعت (کښت کولو)قابله وي له حاصلاتوڅخه يوه صاع (صاع داتورطلوپيمانه ده )اويودرهم دی، دادخراج ترټولوادنی مقداردی .

(۸)او دترکاري په يوه جريب کې پنځه درهمه دي ،دادخراج اوسط(درميانه ) مقداردی ولی چې دترکاري ځمکي درميانه ځمکي دي ،او دانګورو او خرماؤ درختي که ګڼي وي نو دهغو په يوه جريب کې

لس درهمه دي ولي چې دادځمکو اعلی قسم دی ،په همدي حساب سره حضرت عمر ﷺ دصحابه کرامو ﷺ په موجودګي کې دعراق په والاوو مقرر کړی وو او صحابه کرام ﷺ په هغه انکار نه وکړی نو دا دصحابه کرامو ﷺ اجماع ده.

(۹)او دمذکوره بالااقسامو څخه علاوه که نوري ځمکې (مثلا په کومه کې چې يې زعفرانوکرلي وي)وي نو پرهغو به په حسب طاقت خراج مقررکيږي ولی چې حضرت عمر ﷺ دخراج په مقرر ولو کې دځمکو دطاقت لحاظ کړی دی نو په کومو ځمکو کې چې ده ﷺ خراج نه دی مقرر کړی په هغو کې به موږ هم دځمکې دطاقت لحاظ کوو ،نوکه داسې صورت پيښ شو چې څومره خراج چې پر ځمکه مقرر شوی وي هغې هغه نه شوبرداشت کولای مثلا خراج دومره ډيرشي چې دځمکې دټولو حاصلاتو ثلث وي نو امام دي دي دا خراج کم کړي بقدرطاقت دي کړي پردي دصحابه کرامو ﷺ اجماع ده.

(۱۰)البته که دځمکي حاصلات ډيروي نودخراج په مذکوره بالامقداراضافه کول صحيح نه دی ولی چې حضرت عمر ﷺ ته دحاصلاتودزيادت خبرورکول شونوده ﷺ دخراج په مقدارکي اضافه ونه کړه.

(۱۱)وَلَا خَرَاجَ إِنْ غَلَبَ عَلَى أَرْضِهِ الْمَاءُ أَوِ انْقَطَعَ أَوْ أَصَابَ الزَّرْعَ آفَةٌ (۱۲)وَإِنْ عَطَّلَهَا صَاحِبُهَا أَوْ أَسْلَمَ (۱۳)أَوِ اشْتَرَى مُسْلِمٌ أَرْضَ خَرَاجٍ تَجِبُ (۱۴)وَلَا عُشْرَ فِي خَارِجِ أَرْضِ الْخَرَاجِ

**توجمه**:خراج نشته که غالبه شوي پرخراجي ځمکه اوبه،يااوبه ختمې شوې يافصل ته يو آفت ورسيدی،اوکه خراجی ځمکه مالک بې کاره پرېښوده ياهغه مسلمان شو،يامسلمان خراجی ځمکه واخيستله نوخراج واجب دی ،اوعشرنشته دخراجي ځمکي په حاصلاتو کې.

**تشريح** :(۱۱)که پر خراجې ځمکه اوبه راغلې چې دهغوپه وجه سره ځمکه دکښت قابله پاتي نه شوه ياېې اوبه ختمې شوي ياکښت ته داسې أسماني آفت ورسيدی چې دهغه په وجه سره کښت بربادشو نو په دي صورتو نو کې پرخراجې ځمکه خراج نشته ،ولی چې دکښت قدرت (يعنی نماء تقديری )پاتي نه شو کوم چې په خراج کې معتبر دی.

(۱۲)که د خراجې ځمکې مالک پرکښت کولو دقدرت سره سره ځمکه بيکاره پرېښوده نو پرده خراج واجب دی ولی چې ده لره دکښت کولو قدرت وو ده خپله ضائع کړ همداشان پرکومو خلګو چې خراج واجب وي که له هغوئ څخه يو مسلمان شو نواوس هم له هغه څخه دپخواپه شان خراج ورل کيږي ولی چې دده ځمکه په خراجي والی سره متصفه شوې ده لهذااوس په مالک کې په تغيرراتلوسره دځمکې په صفت کې تغيرنه راځي.

(۱۳)همداشان که مسلمان خراجې ځمکه واخيستله نو اوس به هم له هغه څخه خراج ورل کيږي ولی چې مسلمان ته لکه څرنګه چې دذمی دنو رو املاکو اخيستل جائز دي همداشان دخراجې ځمکې اخيستل هم جائز دي،بيا له مسلمان مشتری څخه به هم خراج ورل کيږي ولی چې صحابه کرامو ﷺ خراجې ځمکې اخيستي او دهغو خراج به يې ورکاوو نو دا دخراجې ځمکو داخيستلو او دهغو دخراج ورکولو دجواز دليل دي.

(۱۴) دخراجي ځمکو په حاصلاتو کښ عشر نشته بلکه صرف خراج شته ولې چې دحضور ﷺ ارشاد مبارک دی، چې دیو مسلمان په ځمکه کښ عشر او خراج دواړه نه شي سره جمع کیدای او همدا شان تر نن ورځې پورې کوم حاکم دا دواړه نه دي سره جمع کړي نو دا دامت په دې خبره عملي اجماع ده چې په یوه ځمکه کښ به دواړه نه جمع کیږي.

## فصل في الجزية

### دا فصل دجزیې د احکامو بیان کښ دی

جزیه لغةً دجزاء په معنی ده نو کافرکه هم جزیه نه ورکولای نو قتل کیدی به نو جزیه دقتل بدله او جزاء ده په دې وجه هغې ته جزیه ویل کیږي، دجزیه اصطلاحي تعریف له دې ځخه وړاندې تیرشوی دی، جزیه دمطلق خراج دوهم قسم دی البته لومړی قسم (دځمکي دحاصلاتو خراج) ځرنګه چې قوي دی ولې چې که دځمکي مالک مسلمان شي بیا به هم واجب وي حال داچې جزیه په اسلام قبلولو سره ساقطیږي په دې وجه یې هغه قسم له دې دوهم قسم ځخه وړاندې ذکرکو.

(۱) الجزية لو وضعت بتراض و صلح لا يعدل عنها (۲) و إلا يوضع على الفقير المعتمل في كل سنة اثنا عشر درهما و على وسط الحال ضعفه و على المكثر ضعفه (۳) و توضع على كتابي و مجوسي و وثني عجمي (۴) لا عربي (۵) و مرتد و صبي و امرأة و عبد و مكاتب و زمن و أعمى و فقير غير معتمل (۶) و راهب لا يخالط

**ترجمه:** جزیه که دطرفینو په رضا او خوښه سره مقرره شوه نو عدول نه کیږي له هغې ځخه، که نه نو مقرریږي به پر فقیر باندې چې مزدوري کوي هر کال دولس درهمه او پر متوسط الحال باندې ددې دوو چنده، او پر غني دهغه دوچنده، او جزیه به مقرریږي پر کتابي او مجوسي او عجمي بت پرست باندې، نه پر عربي بت پرست باندې، او پر مرتد او نابالغ او ښځې او غلام او مکاتب او شل او ړانده او په مزدوري نه کونکي فقیر، او په داسې راهب کوم چې له خلګو سره راشه درشه نه لري.

**تشریح:** (۱) جزیه (ټیکس) پر دوقسمه ده یوه هغه چې په خپلې منځي رضا او صلح سره مقرره کړای شي نو دهغې مقدار به هغه وي پر کوم چې فرقین (امام المسلمین او کافر قوم) اتفاق کړی وي ولې چې ددې موجب خپلې منځي رضاده نو پر کوم چې اتفاق شوی وي هغه به ورل کیږي له هغه ځخه زیات به نه ورل کیږي ولې چې له دې ځخه تجاوز کول غدر شمارل کیږي کوم چې جائز نه دی.

(۲) قوله و الا توضع اى وان لم توضع بالتراضي بل بالقهر بان غلب عليهم والزمهم عليها، یعنی دوهم قسم جزیه هغه ده چې کله امام پر کفارو غالب شي او دهغوی ملک فتح کړي او دهغوی ملکیتونه دهغوی په قبضه کښ پریږدي په خپله په شروع کولو سره پر هغوی جزیه مقرره کړي هیڅ قسم صلح او تراضي نه وي، ددې قسم دجزیه تفصیل په دې ډول دی چې که هغه خلګ فقیران (کوم چې تر دوسوه درهمه دلږو مالک وي او لایملک شیئا) وي او مزدوري کوي له هغوی ځخه به هر کال دولس درهمه ورل کیږي هر میاشت به یو درهم ورل کیږي، او که هغه خلګ متوسط الحال وي یعنی کوم چې له دوه سوه درهمه ځخه بیا تر لس زره پورې درهمو مالک وي پر هغوی به دفقیرانو دوچنده (دوه برابره) مقرریږي یعنی هر کال څلوریښت درهمه مقرریږي او داسې

لپاره به هره مياشت دوه درهمه ورل كيږي ،اوكه داسي غنيان وودكوموچې غناء ښكاره وي يعنى كوم چې دلسوزرويازياتودراهومالكان وي نوپرهغوئ به دمتوسط الحال والودوچنده مقرريږي يعنى پرهغوئ به هركال اته څلويښت (۴۸)درهمه مقرريږي بيابه داساني لپاره په هره مياشت كې څلوردرهمه ورل كيږي همدا تفصيل له حضرت عمر،حضرت عثمان او حضرت على ﷺ څخه منقول دى له انصاروا ومهاجرينو څخه هيچاپزدي انكارنه دى كړى لهذادادصحابه كرامو ﷺ له طرف څخه پردي مقدارونو اجماع شمارل كيږي.

(۳)جزيه پر اهل كتابو او مجوسو باندې مقرر كيږي لقوله تعالى﴿من اللذين اوتوا الكتاب حتى يعطوا الجزية﴾ (يعنى له هغوئ سره ترهغه وخته وجنگيږئ ترڅو هغوئ ستاسي تابع اورعيت جوړ شي او جزيه قبوله كړي)او حضور ﷺ پر مجوس هجر باندې جزيه مقرره كړي وه لهذا له مجوسو څخه به هم جزيه ورل كيږي،او پرعجمي عبدة الاوثان ،(يعنې پر عجمي بت پرستانو )به هم جزيه مقرركيږي ولى چې هغوئ غلام جوړول جائز دي نو پرهغوئ جزيه مقررول هم جائز دى .

(۴)قوله لاعربي اى لاتوضع على ولنئ عربى ،يعنى دعربوپر بت پرستانو به جزيه نه مقرريږي ولى چې نبى كريم ﷺ دهغوئ په منځ كې پيداشوى دى اوقران مجيد دهغوئ پرژبه نازل شوى دى نودهغوئ په حق كې معجزات ډيري ښكاره دي لهذا اخلك اوس په كفركولو كې معذورنه دي لهذا دهغوئ لپاره دوه لاري دي ياخوډي مسلمان شي يابه قتل كيږي ،همدشان پرمرتدينو هم جزيه نه مقرريږي ولى چې هغوئ داسلام طرف ته دهدايت موندلو اودمحاسن اسلام له ليدلو وروسته كفروكړنو له هغوئ څخه به له اسلام څخه ماسوا هيڅ نه منل كيږي .

(۵)قوله وصبى وامراة الخ اى لاتوضع على صبى وامراة الخ ،يعنى پر نابالغ هلك ، كافره ښځه ،مكاتب غلام ، شلى،اوړانده، باندې به جزيه نه مقرريږي ولى چې جزيه پركافرانو دهغوئ دقتل كولوپه عوض كې واجبيږي يادهغوئ دقتال په وجه سره واجبيږي حال داچې مذكوره كسان خونه قتل كيږي اونه دوئ قتال كوي ولى چې په دوئ كې دقتال اهليت نشته، اوپرداسي فقيربه هم جزيه نه مقرريږي كوم چې مزدوري نه كوي ولى چې حضرت عثمان ﷺ دصحابه كرامو ﷺ په موجودوالى كې له داسي مزدورانو څخه جزيه نه اخيستله.

(۶)قوله وراهب لايخالطهم اى لاتوضع على راهب لايخالطهم .يعنى پرداسي راهبانو هم جزيه نه مقرريږي كوم چې له آبادي څخه دباندې په خپلو ځالو كې تنهااوسيږي وجه يې داده چې كله دوئ له خلكو سره راشه درشه نه لري نو ددوئ دقتل كولو حكم نشته نو جزيه به هم پردوئ نه مقرريږي ولى چې پر كافرانو جزيه دقتل دساقطوالي په وجه سره مقرريږي .

(۷)وَتَسقطُ بِالإسلَامِ(۸)وَالتَّكرَارِ(۹)وَالمَوتِ(۱۰)وَلَاتُحدَثُ بِيعَةٌ وَلَا كَنِيسَةٌ فِي دَارِنَا(۱۱)وَيُعَادُ المُنهَدِمُ(۱۲)وَيُمَيَّزُ الذِّمِّيُّ عَنَّا فِي الزِّيِّ وَالمَرْكَبِ وَالسَّرجِ(۱۳)فَلَا يَرْكَبُ خَيلًا وَلَا يَعمَلُ بِالسِّلَاحِ وَيُظهِرُ الكُستِيجَ وَيَركَبُ سَرجًا كَالإِكَافِ(۱۴)وَلَا يُنتَقَضُ عَهدُهُ بِالإِبَاءِ عَنِ الجِزيَةِ وَالزِّنَا بِمُسلِمَةٍ وَقَتلِ مُسلِمٍ وَسَبِّ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم(۱۵)اِلَّا بِالِالتِحَاقِ لَهُمْ اَو بِالغَلَبَةِ عَلَى مَوضِعٍ لِلحِرَابِ وَصَارُوا كَالمُرتَدِّ.

ترجمه: او جزيه ساقطيږي په مسلمانيدلو ،اوپه مكرر كيدلو سره ،اوپه مره كيدلو سره ،اونه به جوړيږي نوي كليسا اونه گرجا په دارالاسلام كې ،هورنگه شوي بيرته دوهم ځل جوړولى شي ،اوځان به ممتاز ساتي ذمى

له موږ څخه په هیئت او سورلی اوین کې ،نو هغه به نه په آس سپرېږي او نه به اسلحه استمالوي او ښکار به ساتي زنار او پرداسي زین به سپرېږي کوم چې دکتي په شان وي ،او نه ماتیږي دده عهد ذمه له جزیه څخه په انکار کولو سره او له مسلماني ښځې سره په زنا کولو سره او دمسلمان په قتل کولو سره او نبی کریم ﷺ ته په بنکنځا کولو سره ،بلکه دارالحرب ته په تللو سره یا د جنګ کولو لپاره پر کوم ځای په غالب کیدلو سره او دمرتد په شان کیږي .

**تشریح** :(۷)قوله وتسقط بالاسلام ای تسقط الجزیة لو اسلم من علیه الجزیة .یعنی که دیوذمی پر ذمه جزیه وه بیا هغه مسلمان شو نو هغه جزیه دده له ذمي ساقطیږي﴿لقوله ﷺ من اسلم فلاجزیة علیه﴾(کوم چا چې اسلام قبول کړ دهغه په ذمه جزیه نشته)او همداشان جزیه بطور عقوبت واجبیږي او داسلام په وجه سره عقوبت ختمیږي په دي وجه هم جزیه ساقطیږي .

(۸)قوله والتکرر ای وتسقط الجزیة بتکرار السنة .یعنی که پر کوم ذمی ددوو کلونو جزیه جمع شي نو دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد په دي کې تداخل کیږي یعنی اوس به دیوه کال جزیه اداء کوي ولی چې جزیه عقوبت ده او قاعده داده چې چیرته دیوه قسم دوه عقوبته جمع کیږي هلته په یوه اقتصار کیږي لکه په حدودو کې ،دصاحبینو په نزد نه ساقطیږي بلکه له ده څخه به مطالبه کیږي ولی چې دا دده پر ذمه واجب شوي ده لکه څرنګه چې دمسلمان پر ذمه ذکوة واجبیږي لهذا دزکوة په شان به جزیه هم له ذمه څخه نه ساقطیږي .

ف :دامام صاحب قول راجح ده لما في الدر المختار :اذا اجتمع علیه حولان تداخلت والاصح سقوط جزیه السنة الاولی بدخول السنة الثانیة(الدر المختار علی هامش رد المحتار:۳\۲۹۵)

.(۹)قوله والموت ای وتسقط الجزیة بموت الذمي ایضا ،یعنی دکوم ذمی پر ذمه چې جزیه وه که هغه مړ شو نو هم جزیه ساقطیږي ولی چې جزیه عقوبت په ډول واجبیږي او عقوبت په دنیاکې په دي وجه مشروع دی تر څو په دي سره دکافرانو کفري شرارت دفع وي او هغه شرارت اوس دمرګ په وجه سره دفع شو لهذا جزیه هم ساقطیږي .

(۱۰)یعنی په دارالاسلام کې دنصارا او یهودو لپاره نوې بیعه (دنصارا و عبادت ځای )او کنیسه (دیهود عبادت ګاه) جوړول جائزنه دي﴿لقوله ﷺ لا اخصاء في الاسلام ولا کنیسة﴾(یعنی په اسلام کې ځان خصي کول نشته او دکلیسا جوړل نشته)دیهود او نصارا و ددواړو په عبادت ځای دکلیسا اطلاق کیږي،البته غالب استعمال یې دیهود دعبادت ګاه لپاره دی .

(۱۱)البته که زړه بیعه یا کلیسا ونړیږي نو هغه جوړولای شي ولی چې دحضور ﷺ له زمانې څخه ترننه پوري دهغوئ عبادت ګاوي په دارالاسلام کې موجودي دي ،نو داله ورانیدو وروسته دبیا جوړولو دلیل دی ،او همداشان عمارت خو همیشه نه پاتي کیږي او امام چې کله ذمیان پریښول نو ګواکې ده دهغوئ دعبادت ګاو دبیرته جوړولو عهد هم ورسره وکړ .

(۱۲)کوم ذمی چې په دارالاسلام کې اوسیږي له هغوئ څخه به دا عهد اخیستل کیږي چې په هغوئ کې او په مسلمانانو کې دامتیاز لپاره به هغوئ په خپل هیئت او لباس کې سورلیانو ، زینانو ، او خولیانو کې کوم امتیازي نښه ایږدي چې په هغه سره هغوئ ذمیان معلوم شي ولی چې حضرت عمر رضي الله عنه هغوئ په دي

امتیاز مکلف کړي وو او صحابه کرامو ﷺ دا صحیح ګڼله ،همدا رازپه دي وجه هم ترڅو دهغویٔ حقیروالی ښکاروي او د مسلمانانو معززوالی ښکاره وي ترڅو دکمزورعقیدو والا مسلمانان محفوظ پاتې شي .

(۱۳)ذمی به په دارالاسلام کې پر آسانو نه سپریږي او نه به له خپل ځان سره اسلحه راخلي ولی چې په دي کې دهغویٔ لپاره وسعت او اعزاز دی وقد امرنا بالتضیيق علیهم ،همدا شان به ذمی کستیج (کستیج دوړیوادنی سپنسي ته ویل کیږي کوم چې ډیر پنډوي )دکفر دعلامې په ډول سره پرخپلو جامو برسیره تړي او پرداسې زین به سپریږي چې هغه دکتي په شکل وي داټول ددي لپاره ترڅو دهغویٔ حقیروالی ښکاره وي او دکمزوروعقیدو مسلمانان محفوظ پاتي شي .

(۱۴)که ذمی دجزیه له اداءکولو څخه انکاروکړ یایې له یوي مسلماني ښځې سره زناوکړه یایې یو مسلمان قتل کړ یایې حضور ﷺ ته (نعوذبالله)ښکنځا وکړه نودده دذمی والی عهدنه ماتیږي ولی چې له ده سره جنګ کول پرکوم حدپای ته رسیږي هغه دادی چې کافرپرخپل ځان دجزیه التزام وکړي نه داچې جزیه اداء کړي لهذاله جزیه څخه دانکارکولوپه صورت کې التزام جزیه پاتي دی لهذاله ده څخه به جبراورل کیږي ،پاتي شودقتل مسلمان ،اوله مسلماني ښځې سره زناکول اودسب النبی ﷺ په صورت کې هم څرنګه چې التزام جزیه باقی دی لهذاعهدذمه نه ماتیږي ،البته دقتل مسلم په صورت کې به له ده څخه قصاص اخیستل کیږي ،اودزنی په صورت کې به پرده حدجاري کیږي ،اونبی کریم ﷺ ته دښکنځاکولوپه صورت کې به هغه ته سزاورکول کیږي .

(۱۵)قوله بل باللحاق لئه الخ ای بل ینتقض عهده باللحاق بدارالحرب الخ .یعنی په مذکوره امورو سره دذمی عهدذمه نه ماتیږي بلکه دالحرب ته په تللوسره یادذمیانو دکوم جماعت پري کوم ځای په غالبه کیدلو اوله مسلمانانوسره دجنګ په شروع کولوسره عهدذمه ختمیږي ولی چې اوس دذی والی عهدبي فائدي شوپه دي وجه چې معاهده خودجنګ دشردفع کولولپاره ووحال داچې هغویٔ خوجنګ شروع کړی دی لهذادحربی کیدلوپه وجه سره دهغویٔ عهدماتیږي ،لهذاپه دي دووصورتونوکي هغویٔ دمرتدپه حکم کې ګرځي یعنی اوس دهغویٔ قتل کول اودهغویٔ مال دهغویٔ په وارثانوتقسیمول صحیح دي ولی چې اوس هغویٔ دتباٸن دارینوپه وجه سره له امواتو (مرادغیرمسلم دي )سره یوځای شوي دي .

(۱۶)ويؤخذ من تغلبي وتغلبية ضعف زكاتنا (۱۷)ومولاه كمولى القرشي (۱۸)والجزية والخراج ومال التغلبي وهدية أهل الحرب وما أخذنا منهم بلا قتال يصرف في مصالحنا كسد الثغور وبناء القناطر والجسور وكفاية القضاة والعلماء والمقاتلة وذراريهم (۱۹)ومن مات في نصف السنة حرم عن العطاء

**ترجمه**،اوورل کیږي به له بالغ تغلبی نارینه اوښځي څخه زموږدزکوة دوه چنده ،اودهغویٔ ازادکړل شوی غلام دقریشیانو دازادکړل شوی په شان دی ،اوخراج اوجزیه اودتغلبی مال اودکافرانوهدایاوي اوکوم څه چې موږله هغویٔ څخه بلاقتاله وړوهغه به زموږپه مصالحوکې مصرفیږي لکه دسرحداتوپه مضبوطولوکې چنیو اولویپلونوپه جوړولوکې او دقاضیانو اوعالمانو اوسپاهیانو اودهغویٔ اولادنوته دظیفي په ورکولوکې ،اوکوم چې دکال په منځ کې مړشي نوهغه به له بخشش څخه محرومیږي .

**تشريح**:(۱۶)يعنى دخاندان بني تغلب دنصاراوو له مالو نو څخه به تېكس هغه زكوة دوه برابره اخيستل كيږي كوم چې له مسلمانانو څخه اخيستل كيږي ولى چې له هغوئ سره صلح په همدي شان سره شوي وه ،اودهغوئ له ښځو څخه به هم اخيستل كيږي ليكن دهغوئ له ماشومانو څخه به نه اخيستل كيږي ولى چې صلح په دوه چنده زكوة شوي ده اوكوة زموږپرښځوواجب دی پرماشومانونه دی واجب نودد وچنده به هم همدا حال وي .

**ف**:بنى تغلب دعربو له نسل څخه دي كوم چې دجاهليت په زمانه كې عيسايان شوي وو بيا حضرت عمر ﷺ دخپل خلافت په زمانه كې له هغوئ څخه جزيه طلب كړه نو دي خلكو انكاروكړچې موږعرب يوله موږسره دي دنوروعربوپه شان معامله وكړاى شي مگر حضرت عمر ﷺ وفرمايل چې له مشرک څخه صدقه نه اخلم ددي په اوريدلو سره له دهغوئ څخه ځيني وتښيدل اوله نصارى روم سره يو ځاى شول نونعمان بن زرعه عرض وكړاى اميرالمؤمنينه هغوئ دجزيه په وركول شرميږي لهذاته دصدقه په نامه سره له هغوئ څخه جزيه وصول كړه اودښمنان دهغوئ كومک ته مه پريږده نوحضرت عمر ﷺ هغوئ راوغوښتل څومره اندازه چې له مسلمانانو څخه زكوة اخيستل كيدى دهغه دوچنديې دهغوئ په نارينه اوښځو مقرركړاوپردي صحابه كرامو ﷺ اتفاق وكړ .

(۱۷)يعنى دتغلبى پرازاد كړاى شوي غلام جزيه او خراج لازم دى خو دتغليبانو په شان به له هغوئ څخه دو چنده نه اخستل كيږي لكه چې دهاشميانو پرآزادكړې غلام باندي چې جزيه او خراج واجب دى ولى چې دتغليبي څخه دو چنده اخيستل تخفيفا دى او ازاد كړاى شوى غلام په تخفيف كې له ازاد دو نكو سره نشي برابر كيدلاى په دي وجه دمسلمانانو پرازاد كړاى شوي غلام جزيه واجب ده .

(۱۸)يعنى كوم مال چې امام دخراج اوجزيه اوله بنى تغلب څخه په اخيستلوجمع كړى وي ياكوم چې اهل حرب امام ته تحفة راليږي وي يادهغوئ هغه مالونه كوم چې له هغوئ سره له جنگ كولو بغيرمسلمانانوته په لاس ورغلي وي داټول به دمسلمانانوپه عامومصلحتونوكې مصرفيږي لكه داسلام سرحدونه په فوځ سره مضبوط كول اوپه دريابونواويالوپلونه جوړول همداشان دمسلمانانو قاضيانو اوعمالو (لكه مفتى محتسب وغيره)اوعلماوته دومره وركول كوم چې هغوئ اودهغوئ اولاد لره كفايت وكړي ،همدشان له دي څخه دمجاهدينواودهغوئ داولادرزق وركول ،وجه داده چې دامالونه دمسلمانانوپه قوت سره بغيرله جنگ كولو حاصل شوي دي نودابه دمسلمانانودعامومصلحتونولپاره وي اومذكوره بالامصارف دعامه خلكو له مصلحتونو څخه دي .

**ف**:جسر (په معنى دپل) له قنطره څخه عام دى ولى چې جسر كله دلرگي وي اوكله دخاوري ،حال داچې قنطره صرف له ډبرو څخه جوړه شوي وي .

(۱۹)له مذكوره بالا قضاة او علماؤ څخه چې كوم يو دكال په منځ كې مړشي نو هغه ته به له مذكوره بالاسركاري عطاياو څخه اوس هيڅ نه وركول كيږي ولى دايو قسم صله ده په همدي وجه خودي عطاياويل كيږي لهذاله قبضي څخه وړاندي يې هيڅوک مالک نه دى اوپه مرگ سره ساقطيږي .

## بَابُ الْمُرْتَدِّيْنَ

### داباب دمرتدینو داحکامو په بیان کې دی

کله چې مصنف رحمه الله دکفراصلي له بیان ځخه فارغ شونودکفرعارضي یعنی ارتدادبیان یې شروع کړدتاخیروجه ظاهره ده.مرتدپه لغت کې دګرځیدونکي په معنی دی اوشرعاًله دین اسلام ځخه ګرځیدلي ته مرتدوایي ،دارتدادصحت لپاره عقل،افاقه،اوپه خوښي سره مرتدوالی شرط دی،لهذا دمجنون،معتوه،کوچنی،په نشته کې دمست اومکرَه ارتداد صحیح نه دی.

(۱)يُعْرَضُ الْإِسْلَامُ عَلَى الْمُرْتَدِّ وَتُكْشَفُ شُبْهَتُهُ وَيُحْبَسُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَإِنْ أَسْلَمَ وَإِلَّا قُتِلَ (۲) وَإِسْلَامُهُ أَنْ يَتَبَرَّأَ عَنِ الْأَدْيَانِ سِوَى الْإِسْلَامِ أَوْ عَمَّا انْتَقَلَ إِلَيْهِ (۳) وَكُرِهَ قَتْلُهُ قَبْلَهُ وَلَمْ يَضْمَنْ قَاتِلُهُ (۴) وَلَا تُقْتَلُ الْمُرْتَدَّةُ (۵) بَلْ تُحْبَسُ حَتَّى تُسْلِمَ.

**ترجمه** :عرض کیږي به اسلام پرمرتداولیري کیږي به دهغه شبه اوبندي کیږي به تردریوورځوپوري نوکه هغه اسلام قبول کړنوښه ده که نه نو قتل کیږي به ،اودهغه اسلام دادی چې هغه له ټولوادیانو ځخه برأت اعلان کړي ماسوا له اسلامه، یادکوم لورته چې هغه منتقل شوی دی ،اومکروه ده دهغه قتل کول له اسلام عرض کولو ځخه وړاندي اوضامن نه دی دهغه قاتل ،اونه به وژل کیږي مرتده ښځه ،بلکه بندي کیږي به ترڅوچې اسلام راوړي.

**تشریح**:(۱)که کوم مسلمان مرتدشو(العیاذبالله )نواستحباباً پرهغه اسلام عرض کیږي واجب نه دی ولی چې داسلام دعوت هغه ته رسیدلی دی اوکه هغه ته کومه شبه پیداشوي وي نوهغه دي ختمه کړای شي ولی چې نبی کریم ﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته وفرمایل چې که ستاپه وجه سره الله جل جلاله کوم کس ته هدایت وکړي نودادمابین المشرق والمغرب ځخه ګوله وژلو ځخه ښه ده ،اوتردریوورځوپوري دهغه په بندي خانه کې واچول شي ترڅوهغه په دي دریوورځوکې غوراوفکروکړي ،هره ورځ دي پرده اسلام عرض کیږي نوکه په توبه ایستلوسره یې بیرته دوهم ځل اسلام قبول کړنوفبهاونعمت ،اوکه یې اسلام قبول نه کړنوهغه به وژل کیږي لحدیث رسول الله ﷺ من ترک دینه فاقتلوه(یعنی کوم چاچې خپل دین پریښود هغه قتل کړئ).

(۲)او دمرتدِ داسلام راوړلو اوتوبه ایستلو طریقه داده چې کلمه شهادت ووایي او له اسلام ځخه علاوه له نورو ټولو ادیانو ځه دبرأت او بیزاری اعلان وکړي ،ولی چې دمرتد هیڅ دین نشته چې له هغه ځخه په بیزاري باندي دی دمکلف کړای شي،او داهم صحیح ده چې له اسلام پریښودلو ځخه وروسته چې هغه کوم دین منلی وي صرف له هغه دین ځخه دبرأت اعلان وکړي ولی چې په دي سره هم مقصود حاصلیږي .

(۳)اوکه له اسلام عرض کولووړاندي چامرتدوواژه نودافعل مکروه دی ولی چې ممکنه وه چې داسلام ددعوت په ورکولوسره هغه مسلمان شوی وای،نوده مستحب کارپریښی دی ولی چې دارتداد په وجه سره دهغه قتل مباح دی اودعوت اسلام ورته رسیدلي دی لهذا پرهغه اسلام عرض کول واجب نه دي صرف مستحب دی ،مګرپرقاتل قصاص یادیت هیڅ نشته ولی چې ده مباح الدم کس وژلی دی ، هوده ته به تعزیرورکول کیږي ولی چې ده بي ځایه جرأت کړی دی .

(۴)که یوه مسلمانه ښځه مرتده شوه نو هغه به نه وژل کیږي ولی چې حضور ﷺ دښځو له وژلو ځخه منع کړي ده او حضور ﷺ داصلی کافري او مرتدي په منځ کې فرق نه دی بیان کړی، همداشان دکافر مباح

الدم كيدلو وجه دهغه له مسلمانانو سره جنگ كول دي او جنگ كول دښځې په حق كې معدوم دى لهذا دهغې قتل مباح نه دى.

(۵) ليكن مرتده به بندي كيږي ترڅو هغه مسلمانه شي ولى چې هغې يوځل د الله ﷻ دحق اقرار كړى ده ،اوس دقدرت درلو دلو باوجوددهغه له اداء كولوانكاركوي نو په بندي كولوسره دهغه په اداء كولومجبوره كيږي كمافي حقوق العباد .

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزدبه مرتده ښځه هم قتل كيږي ولى چې د حضور ﷺ حديث مبارك ﴿من ترك دينه فاقتلوه﴾ (يعني كه چاخپل دين پريښو د هغه قتل كړئ) مطلق دى نر او ښځې دواړوته شامل دى.

(٦) وَيَزُولُ مِلْكُ الْمُرْتَدِّ عَنْ مَالِهِ زَوَالًا مَوْقُوفًا فَإِنْ أَسْلَمَ عَادَ مِلْكُهُ (٧) إِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ عَلَى رِدَّتِهِ وَرِثَ كَسْبَ إِسْلَامِهِ وَارِثُهُ الْمُسْلِمُ بَعْدَ قَضَاءِ دَيْنِ إِسْلَامِهِ (٨) وَكَسْبُ رِدَّتِهِ فَيْءٌ بَعْدَ قَضَاءِ دَيْنِ رِدَّتِهِ.

**ترجمه** :او زائليږي دمرتد ملک دهغه له مال څخه په موقوف زوال نو كه هغه مسلمان شي نو بيرته راګرځي دهغه ملک، او كه مړشو يا ووژل شو پر ردت نو وارث ګرځي دده داسلام دوخت دګټې دهغه مسلمان وارث دحالت اسلام دقرض له اداء كولو څخه وروسته ،او دهغه دحالت ردت ګټه به غنيمت وي دحالت ردت دقرض له اداء كولو څخه وروسته .

**تشريح**:(۶) يعني دمرتد ملكيت له خپلو مالو څخه دمرتدكيدلو په وجه سره زائليږي ولى دهغه وينه معصومه پاتي نه شوه نو دهغه مال هم معصوم نه پاتي كيږي مګر دمرتد دملک دازوال موقوف دى ترڅو چې دهغه حال مال واضح شي ولى چې دهغه حال متردد دى چې په اسلام راوړلو سره به بيرته دعصمت طرف ته راوګرځي او كه به دمرتد والى په حالت كې ووژل شي ،بياكه هغه اسلام قبول كړنو دهغه دمال عصمت خپل مخكنى حال ته بيرته راګرځي ولى چې دهغه وينه اوس معصومه شوه نو دهغه مال هم محفوظ ګرځي .

(۷) او كه دردت په حالت كې مړيا قتل شو نو دمرتد هغه مال چې داسلام په حالت كې ګټلى وو نو له هغه مال څخه به اول دمرتد هغه قرضونه اداكړاى شي چې هغه داسلام په حالت كې كړي وي له دې څخه وروسته باقي مال دمرتد دمسلمانو وارثانو ته منتقل كيږي ولى چې دامال دهغه له مرتد كيدلو څخه وړاندي موجود وو او دوارث نسبت دهغه داسلام آخيري جزء ته كيږي ولى چې ردّت په منزله دمرګ دى نو داتوريث المسلم من المسلم دى كوم چې صحيح دى .

(۸) او كوم مال چې هغه دردّت په حالت كې ګټلى وي له هغه مال څخه به دردّت دزماني دقرضو له اداء كولو وروسته باقي مال غنيمت ګرځي او په بيت المال كې به ايښودل كيږي ولى چې دحالت ردت ګټه دمباح الدم ګټه ده په كومه كې چې دهيچا حق نښته نو دحربي دمال په شان به غنيمت وي .

(٩) وَإِنْ حُكِمَ بِلَحَاقِهِ عَتَقَ مُدَبَّرُهُ وَأُمُّ وَلَدِهِ وَحَلَّ دَيْنُهُ (١٠) وَتَوَقَّفَ مُبَايَعَتُهُ وَعِتْقُهُ وَهِبَتُهُ فَإِنْ أَمِنَ نَفَذَ وَإِنْ هَلَكَ بَطَلَ (١١) وَإِنْ عَادَ مُسْلِمًا بَعْدَ الْحُكْمِ بِلَحَاقِهِ فَمَا وَجَدَهُ فِي يَدِ وَارِثِهِ أَخَذَهُ (١٢) وَإِلَّا لَا.

**ترجمه** :كه حكم وشو دهغه دارالحرب ته دتللو نو ازاديږي دهغه مدبر غلام او دهغه ام ولده او دهغه پور حلاليږي ،او موقوف كيږي دهغه خرڅول ،ازدول ،او دهغه هبه كول نو كه هغه ايمان راوړنو نافذيږي او كه

هلاک شونو باطلیږي ،اوکه هغه مسلمان شواوراغی دارالحرب ته له تللووروسته نوځه مال چې وموندي دوارث په لاس کې هغه به وړي ،که نه نو نه به یې وړي .

**تشريح** :(۹)که کوم کس مرتدشواودارالحرب ته ولاړی (العیاذبالله )اوحاکم دهغه دارالحرب ته دتللوحکم وکړنودهغه له ثلث مال ځخه دهغه مدبرغلام اوله ټول مال ځخه دهغه ام ولدمینځې ازدیږي اودهغه هغه پورونه چې میعادي(یعني وخت لرونکي وو) ووفوري یعني فی الحال واجب الاداء ګرځي ولی چې دقاضی پرهغه له دارالحرب سره دملحق کیدلو په حکم کولوسره دی له اهل حرب ځخه شو او اهل حرب داسلام داحکامو په حق کې اموات دي ولی چې پرهغوئ هم داموات په شان احکام نه شي لازمیدلای نوګواکی داکس اوس مړشوی دی لهذا دهغه مدبرغلام وغیره ازادیږي .

(۱۰)که مرتد دارتداد په حالت کې کوم شئ خرڅ کړیایې واخیستی یایې په خپل مال کې کوم بل تصرف وکړمثلاچاته یې کوم شئ هبه کړیایې خپل غلام ازادکړنودهغه داهرڅو تصرف موقوف دی ترڅو چې دهغه حال معلوم شي چې هغه به توبه کولوسره مسلمان شي یادارتداد په حالت کې مړشي ، نو که هغه اسلام قبول کړنودهغه داټول تصرفات صحیح کیږي لمامرانه یصیرکانه لم یرتد ،اوکه هغه مړشویاووژل شویادارالحرب ته ولاړی اوحاکم دهغه دتللوحکم وکړنودهغه داټول تصرفات باطلیږي ولی چې اوس هغه معصوم الدم نه دی نودهغه په اهلیت کې خلل واقع شو .

(۱۱)که مسلمان حاکم دمرتد دارالحرب ته دتللو حکم وکړ بیاهغه مسلمان شو او داراالاسلام ته بیرته راغی نوله خپل مال ځخه ځه دخپلوورا ثانوسره یاپه بیت المال کې بعینه وموندي هغه به وړي ولی چې وارث اوبیت المال په دي وجه دهغه قائم مقام شوي ووچې مرتدله هغه مال مستغنی شوی وواوکله چې هغه مسلمان شواوبیرته راغی نودهغه مال محتاج شولهذا له وراثانوځخه ډیرحقداراومقدم دی .

(۱۲)قوله والالا ای وان لم یجد المرتد شیئا من ماله فی یدالوارث لایضمن ،یعنی که دوارثانو په لاس کې دهغه له مال ځخه یوشئ نه وو نو اوس له وارثانو ځخه تاوان نه شي وړلی ولی چې دا مال دده وارثانو په داسې وخت کې استعمال کړی دی چې په هغه وخت کې دشریعت له طرفه هغوئ ته دمصرفولو اجازت وو لهذا اوس په هغوئ باندي ضمان نشته .

(۱۳)وَلَوْ وَلَدَتْ أَمَةٌ لَهُ نَصْرَانِيَّةٌ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ مُنْذُ ارْتَدَّ فَادَّعَاهُ فَهِيَ أُمُّ وَلَدِهِ (۱۴)وَهُوَ ابْنُهُ حُرٌّ وَلَا يَرِثُهُ (۱۵)وَلَوْ مُسْلِمَةً وَرِثَهُ الِابْنُ إنْ مَاتَ عَلَى الرِّدَّةِ أَوْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ (۱۶)وَإِنْ لَحِقَ الْمُرْتَدُّ بِمَالِهِ فَظُهِرَ عَلَيْهِ فَهُوَ فَيْءٌ فَإِنْ رَجَعَ وَذَهَبَ بِمَالِهِ وَظُهِرَ عَلَيْهِ فَلِوَارِثِهِ

**ترجمه** :که ماشوم وزیږاوودمرتدنصراني مینځې له ارتدادځخه په شپږمیاشتي کې او هغه دعوی وکړه نوهغه دده ام ولده ګرځي ،اوماشوم به دهغه زوی وي ازاد ،اودهغه وارث به نه وي ،اوکه مینځه مسلمانه وي نوماسوم به دهغه وارث وي که هغه دارتداد په حالت کې مړشویادارالحرب ته ولاړی ،اوکه مرتدله خپل مال سره دارالحرب ته ولاړی بیاپرهغه غلبه حاصله شوه هغه به غنیمت وي اوکه هغه دارالاسلام ته راغی اومال یې یووړبیاپرهغه غلبه حاصله شوه نودهغه مال به دوراثانو وي .

**تشريح** :(۱۳)که مرتدله داسي نصرانیه مینځې سره وطی وکړه کومه چې داسلام په حالت کې دده په ملک کې وه بیاهغې دده دمرتدوالی له وخت ځخه په شپږمیاشتي یاله دي ځخه په زیات وخت کې ماشوم وزیږاوو

اومرتد دماشوم دنسب دعوی وکړه نو دامینځه دده ام ولده ګرځي ولی چې دمرتد استیلاد صحیح دی په دي وجه چې استیلاد په ملک صحیح پوري موقوف نه دی.

(۱۴)او داماشوم دمرتد زوی شمارل کیږي اوآزاد دی ولی چې کله دمرتد استیلاد صحیح دی نوله ام ولدي څخه پیداشوی ماشوم به دهغه زوی وي، مګرداماشوم به دهغه وارث نه وي ولی چې دده مورنصرانیه ده اوپلاریې اوس مرتدشوی دی کوم چې به دوهم ځل پراسلام مجبوره کیږي لهذا پلاریې دمورپه نسبت اسلام ته ډیرقریب دی لهذا ماشوم دپلارپه تابع کیدلوسره مرتدشمارل کیږي اومرتد دهیچاوارث نه وي لهذا هغه ته به میراث نه ورکول کیږي .اودی مسلمان نه شي ګڼل کیدلای ولی چې له دپلار له ردت څخه وړاندي دهغه وجود معلوم نه وو.

(۱۵)که د ماشوم مورمسلمانه وینځه وي نو ماشوم دمور تابع دی مسلمان شمارل کیږي ولی چې په دي صورت کې ددین په اعتبارسره موربهتره ده اوماشوم دخیرالابوین تابع وي بیا که دهغه پلار دردت په حالت کې قتل شو یادارالحرب ته ولاړی نو.داماشوم دمسلمان شمارل کیدلوپه وجه سره دپلاروارث دی.

(۱۶)که کوم مدتد خپل مال له ځان سره دارالحرب ته یوړ بیا مسلمانان پرهغه ملک غالب شول اودهغه پرمال یې قبضه وکړه نو دامال غنیمت دی، اوکه مرتدیواځې دارالحرب ته ولاړی بیابیرته راغی اوله ځان سره یې خپل مال یووړ اوس مسلمانان پرهغه مل غالب شول اوپردي مال یې هم قبضه وکړه بیادمرتدوارثانوله مال غنیمت تقسیمیدلوڅخه وړاندي دامال ومومندنودامال به وارثانوته ورکول کیږي ،په دواړوصورتونو کې فرق دادی چې په لومړی صورت کې څرنګه چې مرتددامال له ځان سره وړی وولهذا په دي کې میراث نه ووجاري شوی حال داچې په دوهم صورت کې چې کله مرتدلومړی له دي ځایه ولاړی نوقاضی دهغه دارالحرب ته دتللوحکم کړی وودکوم په وجه سره چې دهغه مال دوارثانوطرف ته منتقل شوی وولهذا وارثان دهغه مال مالکین دي اوپه مال غنیمت کې قاعده داده چې که پرهغه دکوم مسلمان سابقه ملک ثابت شي نو دامال به دهغه وي.

(۱۷)إن لحق فقضي بعبده لابنه فكاتبه فجاء مسلما فالمكاتبة والولاء للمورث (۱۸).وإن قتل مرتد رجلا خطأ ولحق او قتل فالدية في كسب الإسلام (۱۹)(ولو ارتد بعد القطع عمدا ومات منه او لحق وجاء مسلما فمات منه ضمن القاطع نصف الدية في ماله لورثته (۲۰)(وإن لم يلحق وأسلم ومات ضمن الدية.

**ترجمه**:اوکه هغه دارالحرب ته ولاړی اوحکم وکړل شو دهغه دغلام دهغه دزوی لپاره نوهغه هغه مکاتب جوړکړ بیاهغه مسلمان شواوراغی نومال کتابت اوولاء به دهغه دمورث لپاره وي ،اوکه مرتدڅوک خطاء قتل کړاودارالحرب ته ولاړی یاووژل شونودیت به دحالت اسلام له ګټې څخه اداء کیږي ،اوکه مرتد شوله عمدالاس پري کیدلوڅخه وروسته اوهغه له دي څخه مړشو یادارالحرب ته ولاړی بیامسلمان شواوراغی بیادهغه په وجه سره مړشونوضامن ګرځي قاطع په خپل مال کې نیمه دیت دمرتدوارثانو لره،اوکه هغه دارالحرب ته نه ولاړی اومسلمان شومړشونودیت ضامن دی.

**تشریح**:(۱۷)که کوم کس په مرتدکیدلوسره دارالحرب ته ولاړی اودلته یې خپل یوغلام پریښود ددي ځای حاکم دهغه دتللوحکم وکړاودهغه له مال څخه یې داغلام دهغه زوی ته ورکړاودهغه زوی دغلام مکاتب

کړله دي څخه وروسته هغه مرتد بیرته مسلمان شو او دارالاسلام ته راغلی نو اوس به ددي غلام دکتابت عوض دزوی پرځای مورث یعنی پلار ته ورکول کیږي او که غلام مړشو نو دهغه ترکه به هم پلار ته ورکول کیږي زوی ته به نه ورکول کیږي ولی چې دکتابت د باطلولو څوهيڅ وجه نشته ولی چې له زوی څخه ددي صدور په ولایت شرعیه سره شوی دی نوموړي دمرتدزوی دهغه له طرف څخه دوکیل په منزله کې وګرځاوه او په عقدکتابت کې حقوق دموکل طرف ته راجع کیږي نه دوکیل طرف ته لهذا غلام دموکل له طرف څخه ازادشوی دی په دي وجه به مال کتابت او ولاء دواړه موکل ته یعنی پلار ته ورکړه وي.

(۱۸)که مرتدیوڅوک خطاء قتل کړیادارالحرب ته ولاړی یادارتدادپه حالت کې ووژل شو نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دمقتول دیت به خاص دقاتل له هغه مال څخه ورکول کیږي کوم چې هغه داسلام په حالت کې ګټلی دی ،او دصاحبینو په نزد به دهغه له ټول مال څخه ورکول کیږي که یې داسلام په حالت کې ګټلی وي او که یې دارتداد په حالت کې ګټلی وي ولی چې دداوړو حالتونو ګټي دهغه مال دي په دي وجه چې ددواړو حالتونو کې په دي مال کې دهغه تصرفات نافذدي لهذا دیت به له دواړو ګټو څخه ورکول کیږي ،دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادی چې دمرتداودهغه په خاندان کې څرنګه چې اوس نصرت ختم شوی دی لهذا دادیت به دهغه له مال څخه ورکو ل کیږي اودهغه مال هغه دی کوم چې هغه داسلام په حالت کې ګټلی وي ولی چې دهغه تصرفات په هغه کې نافذدي دحالت ردت په مال کې دهغه تصرفات نافذنه بلکه موقوف دي .

ف :دامام ابو حنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدر المختار :مرتد قتل رجلا خطاء فلحق او قتل فدیته فی کسب الاسلام ان کان والا ففی کسب الردة :وقال العلامه ابن عابدین :(قوله فدیته فی کسب الاسلام) هذا بناء علی روایة الحسن المصححة کما قدمناه من أن دین المرتد یقضی من کسب اسلامه الاان لایفی فمن کسب ردته کما یظهر من عبارة البحر وهذا خلاف مامشی علیه المصنف کغیره فی الدین (ردالمحتار :۳\۳۳۴)

(۱۹)که کوم مسلمان دبل مسلمان لاس قصدا وریږي کړاوهغه مقطوع مرتدشو بیاهغه له هغه زخم څخه په دردت په حالت کې مړشو ،یامقطوع دارالحرب ته ولاړی او قاضی دهغه دتللو حکم هم صادر کړ بیاهغه مرتد بیرته مسلمان شو او دارالاسلام ته راغلی اوله هغه زخم څخه اوس مړشو نو پرلاس پري کونکی باندي له خپل مال څخه دلاس دپریکولو په وجه سره نصف دیت دمقطوع وراثانو ته ورکول واجب دی ولی چې قطع ید په محل معصوم کې واقع شوي ده او دزخم سرایت په محل غیرمعصوم کې شوی دی لهذا دقطع اعتبار به کیږي او دسرایت اعتبار به نه کیږي په دي وجه صرف نصف دیت یعنی دقطع ید دیت واجبیږي ،باقی خاص دقاطع په مال کې ددیت دواجبیدلو وجه داده چې قطع ید عمدا شو ي ده او دعمد دیت پر عاقله نه وي .

(۲۰)او که مذکوره بالا مرتد دارالحرب ته نه ولاړی دلته په دارالاسلام کې یو څه وخت وروسته بیا مسلمان شو او په وروسته کې دهمدي قطع ید په وجه سره مړشو نو دشیخینو رحمهما الله په نزد پرلاس پري کونکی باندي دهغه پوره دیت واجبیږي،اودامام محمد رحمه الله او امام زفر رحمه الله په نزد په دي صورت کې هم پرقاطع نصف دیت واجبیږي.دشیخینو رحمهما الله دلیل دادی چې دقاطع جنایت پر یو معصوم محل باندي

وارد شوی دی ولی چې په کوم وخت کې لاس پرېښو دادیو مسلمان لاس وواوکله چې هغه له دي ځخه مړشو نوبیاهم هغه یو مسلمان وولهذاددي جنايت تكميل پرمحل محترم شوی دی لهذا پوره ديت واجبيږي . او دامام محمد رحمه الله او امام زفر رحمه الله دليل دادی چې په منځ کې په مرتدوالی سره دسرايت زخم اعتبارپاتي نه شوپه دوهم ځل اسلام قبلولوسره سرايت په دوهم ځل معتبرولوسره بيرته نه راګرځي .

**ف**:دشيخينو رحمهما الله قول راجح دی لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رح:والمختار قول الشيخين رح وبه قالت الائمة الثلاثة وعليه الفتوى قال شرح الملتقى وقول الشيخين رح ارجح لعصمته وقت السراية كالقطع (هامش الهداية: ۲\۵۸۲)

(۲۱)وَلَوِ ارْتَدَّ مُكَاتَبٌ وَلَحِقَ وَأُخِذَ بِمَالِهِ وَقُتِلَ فَمُكَاتَبَتُهُ لِمَوْلَاهُ وَمَا بَقِيَ لِوَرَثَتِهِ (۲۲)وَلَوِ ارْتَدَّ الزَّوْجَانِ وَلَحِقَا فَوَلَدَتْ وَوُلِدَ لَهُ وَلَدٌ فَظُهِرَ عَلَيْهِم فَالْوَلَدَانِ فَيْءٌ (۲۳)وَيُجْبَرُ الْوَلَدُ عَلَى الْإِسْلَامِ لَا وَلَدُ الْوَلَدِ (۲۴)وَارْتِدَادُ الصَّبِيِّ الْعَاقِلِ صَحِيحٌ كَإِسْلَامِهِ وَيُجْبَرُ عَلَيْهِ وَلَا يُقْتَلُ.

**ترجمه**:اوكه مكاتب مرتدشواودارالحرب ته ولاړی بياونيول شوله مال سره اوقتل کړای شونوبدل كتابت به دهغه دمولى وي اوكوم چې باقی پاتي شي هغه به دهغه دوارثانووي ،اوكه زوجين دواړه مرتد شول اودالحرب ته ولاړل هلته دهغوئ ماشوم وزيږيدا ودهغه ماشوم ماشوم وزيږيدبياپرهغوئ غلبه وموندل شوه نودواړه بچيان به غنيمت وي ،اومجبوره كيږي به بچی پراسلام نه لمسی ،اودعاقل نابالغ مرتدوالی صحيح دی لكه ځرنګه چې دهغه اسلام راوړل اومجبوره كيږي به پراسلام اووژل كيږي به نه .

**تشريح**:(۲۱)كه مكاتب غلام مرتد شو دارالحرب ته ولاړی او هلته يې يو څه مال وګټي بياهغه له مال سره ونيول شو او په حالت ارتداد كې قتل کړای شو نو دهغه له مال ځخه به دهغه مولی ته بدل كتابت اداء كيږي او كه نورمال پاته شو هغه به دمكاتب مسلمانو وارثانو ته وركول كيږي ولی چې مكاتب دعقد كتابت په وجه سره دخپلې ګټې مالک ګرځي او كتابت لكه ځرنګه چې دحقيقي مرګ په وجه سره نه باطليږي همداشان دحكمي موت يعنی د ارتداد په وجه هم نه باطليږي لهذا دهغه ګټه دهغه شمارل كيږي نو مولی ته دبدل كتابت له وركولو وروسته پاتې مال به دهغه وراثانوته وركول كيږي .

(۲۲)كه زوجين ددواړه مرتد شول بيادواړه دارالحرب ته ولاړل هلته ددوئ زوی پيداشو بياهغه هلک غټ شو واده يې وكړ بيادهغه زوی پيداشو اوس مسلمانان پردي ملک غالب شول مور پلار او دا دواړه بچيان (زوی او لمسی )ګرفتار شول نو دادواړه بچيان غنيمت دي ولی چې مرتد ه ښځه دغنيمت كيدلو وروسته مينځه جوړيږي اوددي بچی په حريت او رقيت كې دمور تابع دی لهذا دابه هم غلام جوړيږي باقی پاته شو لمسی نودهغه مور خو چرنګه چې حربيه ده لهذاهغه دمال غنيمت كيدلوپه وجه مينځه جوړيږي نو دهغې زوی هم دمور داتباع له وجې غنيمت شو او غلام جوړيږي .

(۲۳)له مذكوره بالازوی اولمسی ځخه پرزوی داسلام قبولولپاره جبركيږي مګر پرلمسی به جبر(زور)نه كيږي ولی چې زوی دمور اوپلار تابع دی نولكه ځرنګه چې پرمور او پلار باندي داسلام لپاره جبر كيږي نو پر زوی به هم جبر كيږي پاتي شولمسی پرهغه به پ ـ ـي و ـه جبرنه كيږي چې هغه دخپل پلارتابع نه شي جوړيدلای په دي وجه چې دهغه پلارپه خپله دخپل موراوپلار تابع دی اودتابع لپاره تابع نه وي .

(۲۴)كه عاقل هلک (له عاقل څخه مراد دادی چې هغه داسلام حقانيت او دكفر بطلان پيژني ) مرتد شو نو دهغه مرتدكيدل صحيح دی لکه څرنګه چې دهغه مسلمانيدل صحيح دي دارتداد دصحت مطلب دادی چې پرهغه به دمرتد احکام جاري كيږي دعاقل نابالغ اسلام په دي وجه صحيح دی چې حضرت علی ﷺ په ماشوم توب کې اسلام راوړی وواوحضور ﷺ دهغه اعتبارکړی ووپرکوم چې به حضرت علی ﷺ فخرهم كاوو او ردت يې په دي وجه صحيح دی چې حقيقة موجود دی او حقيقت نشي رد كيدلای نو چې كله دهلک ردت معتبر دی نوهغه به پر اسلام راوړلو مجبور كيږي ولی چې په دي کې دهلک فائده ده مګرهغه به نه وژل كيږي ولی چې وژل سزا ده او كوچنيانو ته سزانه وركول كيږي.

## بَابُ الْبُغَاةِ

داباب دباغيانو په بيان کې دی

بغاة ،دباغ جمع ده په معنی د تعدی او ظلم كولو والا ،او په اصطلاح کې باغی هغه كس ياجماعت دی چې دامامِ عادل له اطاعت څخه ديو فاسد تأويل پر بناء خارج شي كوم چې خپل ځان دهغه فاسد تأويل په وجه سره په حق او امام په ناحقه بولي.

له باب المرتدين سره يې مناسبت دادی چې مرتد داسلام څخه په مخ ګرځولو سره راسأله الله تعالی څخه بغاوت كوي اوباغی دالله تعالی له نائب اوخليفه يعنی مسلمان حاكم څخه بغاوت كوي له باب المرتدين څخه ددې باب دتأخير وجه ظاهره ده .يادا سي ووايه كله چې مصنف ﷫ دجهادمع الكفارله تفصيل څخه فارغ شونو دجهادمع البغاة تفصيل يې شروع كړ.

(١)خَرَجَ قَوْمٌ مُسْلِمُونَ عن طَاعَةِ الإِمَامِ وَغَلَبُوا على بَلَدٍ دَعَاهُمُ إِلَيْهِ وَكَشَفَ شُبْهَتَهُمْ وَبَدَأَ بِقِتَالِهِمْ (٢)وَلَوْ لهم فِئَةٌ أُجْهِزَ على جَرِيحِهِمْ وَاتُّبِعَ مُوَلِّيهِمْ وَإِلَّا لَا (٣)ولم تُسْبَ ذُرِّيَّتُهُمْ وَحُبِسَ أَمْوَالُهُمْ حتى يَتُوبُوا (۴)وَإِنْ احْتَاجَ قَاتَلَ بِسِلَاحِهِمْ وَخَيْلِهِمْ (۵)وَإِنْ قَتَلَ بَاغٍ مِثْلَه فَظُهِرَ عليهم لم يَجِبْ شَيْءٌ

**ترجمه** :ووتی دمسلمانانو يو جماعت دامام له اطاعت څخه اوپريو ښار ياندي غالب شول نو امام دي هغوئ ته د اطاعت طرف ته دعوت وركړي اودهغوئ شبه دي ليري كړي اوله هغوئ سره دي قتال شروع كړي ،اوكه دهغوئ كوم جماعت وي نودهغوئ زخميان دي قتل كړي اوتعقيب دي كړي تښتيدونكي كه نه نو نه ،اونه دي بندي كوي دهغوئ اولاداومنع دي كړي دهغوئ مالونوترڅوچې هغوئ توبه وباسي ،اوكه ضرورت وونو جنګ دي كوي دهغوي په اسلحه اوآسانو ،اوكه قتل كړباغی دخپل ځان په شان بل باغی بيا پرهغوئ غلبه وموندل شوه نو هيڅ نه واجبيږي.

**تشريح** :(١)كه دمسلمانانو يو جماعت دامام يانائب امام له اطاعت څخه په خارجيدلو پريو ښارغلبه حاصله كړي نو استحبابا دي امام يادهغه نائب هغوئ ته دمسلمانانو دجماعت طرف ته دبيرته راتللو دعوت وركړي او كه دهغوئ كومه شبهه وه نو دهغوئ شبهه دي زائله كړي په دي وجه چې ممكن ده چې دهغوئ شر په دي سره دفع شي كوم چې له هغوئ سره دجنګ كولو په نسبت اسانه صورت دی . بيا نو كه هغوئ توبه كار نه شول نو امام دي له هغوئ سره د جنګ كولو ابتدا وكړي،لقوله تعالی ﴿فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ إِلَى أَمْرِ اللَّهِ﴾

)(يعنى قتال كوئ له هغې تړولې. دمسلمانانو سره كومه چې بغاوت كوي ترڅوچې دالله تعالى حكم ته غاړه كښيږدي)،همدارازپه مهلت وركولو سره هغوئ قوت پيدا كوي لهذا كيداى شي چې وروسته دي دهغوئ شردفع كول ممكن نه وي .

(۲)بياكه ددي باغيانو يو بل مددگار جماعت هم وي كوموته چې دوئ پناه وروړي نو په جنګ كې چې ددوئ كوم زخميان دي هغه دي قتل كړي اودتښتيدونكوتعاقب دي وكړي ترڅوچې ددوئ شر دفع شي داسې نهچې دوئ له خپل جماعت سره يو ځاى شي ،او كه ددوئ كوم مددگار جماعت نه وي نو ددوئ زخميان دي نه قتلوي او نه دي دتيښتيدونكو تعاقب كوي ولې چې اوس ددوئ دقتلولو ضرورت نشته ولې چې مقصود ددوئ دجماعت تفريق دى او هغه حاصل شو .

(۳)دهغوئ ماشومان او ښځې دي غلامان نه جوړ وي او نه دي هغوئ مال دغنيمت په ډول تقسيموي ولې چې داخلګ مسلمانان دي نو اسلام ددوئ د نفس او مال لپاره عاصم ،(ساتونكى) دى البته دشرددفع كولو په خاطر دي ددوئ اموال موقوف وساتي ترڅو چې دوئ له بغاوت څخه توبه گار شي له توبې كولو وروسته دي بالاجماع ددوئ مالونه دوئ ته بيرته وركړي.

(۴)په دې كې هيڅ مضائقه نشته چې مسلمانان دباغيانوپه اسلحه اواسانوسره له دوئ سره وجنګيږي په دي شرط چې دمسلمانانوضرورت پيداشي اوله مسلمانانوسره اسلحه نه وي ولې چې داسې كول خودضرورت پروخت دعادلانوپه مال كې هم جائزدى دباغيانوپه مال كې خوپه طريقه اولى سره جائزدي ،دامام شافعي رحمه الله په نزد جائز نه دى ولې چې دادمسلمان مال دى او دمسلمان پر مال بغير دهغه له رضامندى څخه نفع اخستل جائز نه ده .

(۵)كه يو باغي دخپل ځان په شان بل باغي قتل كړ بيامسلمانان پرهغوئ غالب شول نو پرهغه قاتل باغي باندې هيڅ واجب نه دي يعنى نه به دهغه مقتول باغى قصاص له هغه څخه اخيستل كيږي او نه به له هغه څخه ديت اخيستل كيږي ولې چې دقتل كولو په وخت كې دامام المسلمين پر هغوئ ولايت حاصل نه دى لهذادا قتل دكوم شئ موجب نه جوړيږي .

(۶)وَإِنْ غَلَبُوا عَلَى مِصْرٍ فَقَتَلَ مِصْرِيٌّ مِثْلَهُ فَظَهَرَ عَلَى الْمِصْرِ قُتِلَ بِهِ (۷)وَإِنْ قَتَلَ عَادِلٌ بَاغِيًا (۸)أَوْ قَتَلَهُ بَاغٍ وَقَالَ أَنَا عَلَى حَقٍّ وَرِثَهُ وَإِنْ قَالَ أَنَا عَلَى بَاطِلٍ لَا (۱۰)وَكُرِهَ بَيْعُ السِّلَاحِ مِنْ أَهْلِ الْفِتْنَةِ وَإِنْ لَمْ يَدْرِ أَنَّهُ مِنْهُمْ لَا

**ترجمه:** اوكه غالب شول هغوئ پركوم ښاروالاوباندي بيادښاروالايوه بل يو دښاروالاقتل كړبياپرښار غلبه حاصله شوه نو قتل كيږي دهغه په بدله كې ،اوكه قتل كړعادل باغى ياقتل كړباغى عادل اووي ويل چې زه پرحق يم نووارث دى اوكه يې وويل چې زه پرباطل يم نونه دى ،اومكروه ده اسلحه خرڅول په اهل فتنه باندي اوكه دامعلومه نه وه چې هغوئ له اهل فتنه څخه دي نو مكروه نه ده .

**تشريح:**(۶)كه پركوم اسلامي ښار باندي باغيانو قبضه وكړه اوپه دي وخت كې دښارله خلګو څخه يوه دخپل ځان په شان بل دښاروالاقتل كړتراوسه باغيانو خپل احكام نه ووجاري كړي چې مسلمانانودوهم ځل پردي ښارقبضه وكړه نوله دي قاتل څخه به دمقتول قصاص اخيستل كيږي ولې چې ده ناحقه قتل كړى دى

اوداوادامام المسلیمن ولایت تراوسه له دي ښار څخه نه دی قطع شوی لهذاپردي ښارد امام المسلمین احکام جاري کیږي په دي وجه به له قاتل څخه قصاص اخیستل کیږي ،اوکه بغاة خپل احکام جاري کړي وونو بیابله قاتل څخه نه قصاص اخیستل کیږي او نه دیت.

(۷)که دوه خلک سره قریبان وو یو عادل یعنی دامام المسلمین فرمانبر داروو او دوهم باغي وو عادل باغي قتل کړ نو هغه دمقتول وارث دی دقتل په وجه سره به له میراث څخه نه محرومیږي ولی عادل چې کله باغی قتل کړي یادهغه مال تلف کړي نو نه ضامن دی او نه ګنهګارولی چې عادل له باغیانو سره په قتال کولو مامور دی لقوله تعالی﴿ فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ إِلَى أَمْرِ اللَّهِ ﴾(یعنی قتال کوئ له هغې ټولی دمسلمانانو سره کومه چې بغاوت کوي ترڅو چې دالله تعالی حکم ته غاړه کښي.

(۸)که باغي عادل قتل کړ او دایې وویل چې زه دهغه په قتل کولو کې پرحق یم نو دا باغي دهغه مقتول وارث دی دقتل په وجه له میراث څخه نه محرمیږي ولی هغه په تاویل کولو سره وژلی دی که څه هم تاویل یې فاسد دی ولی چې ددفع ضمان په حق کې تاویل فاسد دتاویل صحیح په مرتبه کې دی په دي شرط چې فاسد تاویل کونکو ته غلبه او قوت حاصل وي کله چې دتاویل فاسد په وجه سره ضمان واجب نه شونو په دي سره حرمان عن الارث هم نه ثابتیږي ،اوکه باغی وایې چې دقتل کولو پروخت زه پرباطل وم نو له میراث څخه محرومیږي ولی چې دی ګواکی داسي وایې چې ماخپل مورث ناحقه وژلی دی اودمورث ناحقه وژونکی وارث نه وي.

(۹)په اهل الفتنة والفساد (که باغي وي او که غل وي او که غیره) باندي اسلحه خرڅول مکروه دي ولی چې دااعانت علی المعصیت دی،وقال الله تعالی﴿ وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ﴾او که دامعلومه نه وه چې اخیستونکی له مفسدینو څخه دی اوکه نه دی ،نو په دي وخت کې په هغه اسلحه خرڅول مکروه نه دي ولی چې ددارالاسلام په اکثره ښارونو کې اهل صلاح اوسیږي کوم یو شاذ او نادر مفسد وي او داحکامو بناء پر غالب ده په شاذ او نادر نه ده.

## كِتَابُ اللَّقِيطِ

### داکتاب دلقیط په بیان کې دی

لقیط په لغة کې دځمکې څخه راپورته کړل شوی شئ ته ویل کیږي ،دفعیل وزن دمفعول په معنی دی اوس په غورځول شوی ماشوم کې استعمالیږي ،دشریعت په اصطلاح کې لقیط هغه ژوندی ماشوم دی کوم چې خپل اهل دفقراو محتاجی له ویري یاله تهمت زنا څخه دځان ساتنی لپاره غورځولی وي له جهاد سره یې مناسبت دادی چې جهاد مشروع لغیره دی یعنی دنیاله فساد څخه دخالي کولو لپاره مشروع شوی دی او، لقیط. او ،لقطة ،داحیاء نفس او مال لپاره مشروع دي قال الله تعالی﴿وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا ﴾البته ،اول (یعنی جهاد)فرض دی او التقاط په ځینو صورتونو کې مندوب دی په دي وجه یې دلقیط بیان دجهاد له بیان څخه وروسته کړ،بیا د،لقیط،تعلق څرنګه چې ژوندله حفاظت سره دی او د،لقطه ،تعلق دمال له حفاظت سره دی په دي وجه یې دلقیط ذکر تر لقطه مقدم کړ.

(۱) نُدِبَ اِلْتِقَاطُهُ وَوَجَبَ إِنْ خَافَ الضَّيَاعَ (۲) وَهُوَ حُرٌّ (۳) وَنَفَقَتُهُ فِي بَيْتِ الْمَالِ كَإِرْثِهِ وَجِنَايَتِهِ (۴) وَلَا يَأْخُذُهُ مِنْهُ أَحَدٌ (۵) وَيَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْ وَاحِدٍ وَمِنْ اثْنَيْنِ (۶) وَإِنْ وَصَفَ أَحَدُهُمَا عَلَامَةً بِهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ

**ترجمه:** مستحب دی دلقیط اوچتول او واجب دی که دضائع کیدلو ویره وي ،او هغه ازاد دی ،او دلقیط نفقه به له بیت المال څخه وي لکه دده میراث او جنایت ،او نه دي وړي هغه له او چتونکی څخه هیڅوک هم،او دده نسب له یوه کس څخه هم ثابتیږي اوله دوو څخه هم ،او که کوم یوه کومه نښه بیان کړه نو هغه دده ډیر حقدار دی

**تشریح:** (۱) لقیط یعنی لاوارث ماشوم که په داسي ځای کي ووچیرته چي دهغه دهلاکیدلو ویره نه وه نو دهغه اوچتول مستحب دی ولی چي په اوچتولو کي احیاء نفس دہ، او که هغه په داسي ځای کي پروت ووچیرته چي دهغه دضائع کیدلو ویره وه نو بیا دهغه اوچتول واجب دي ولی چي په اوچتولو کي دهغه صیانت دی او له هغه څخه هلاکت دفع کول دي .

(۲) لقیط په ټولو احکامو کي حرشمارل کیږي ولی چي په بنی ادم کي اصل حریت دی همدارازپه دارالاسلام کي د موجودوالی په وجه سره ازاد دی ولی چي دارالاسلام دازادو کسانو ملک دی .

(۳) دلقیط خرڅ پربیت المال دی ولی چي لقیط مسلمان دی او له کسب کولو څخه عاجز دی نه مال لري او نه قرابت ،دداسي کسانو نفقه پربیت المال وي ،نو دلقیط نفقه دهغه دترکي په شان ده یعنی لکه څرنګه چي که لقیط مړشو نو دهغه ترکه بیت المال ته ځي همدشان به دهغه نفقه هم پربیت المال وي ولی چي الغنم بالغرم (یعنی ګټه دنقصان په اندازه وي)،همدشان که لقیط پرچاکوم جنایت وکړنو دهغه تاوان هم پربیت المال دی لماقلنا .

(۴) کوم چاچي لقیط اول اوچت کړ نو دلقیط دحفاظت حق دهغه دی او س کوم بل څوک له ده څخه لقیط نه شي وړلی ولی چي ده په اوچتولو کي سبقت کړی دی لهذا دحفاظت حق دهمده دی کوم بل چالره له ده څخه دوړلو حق نشته الاداچي که دی په خپله اجازت ورکړي .

(۵) که چادعوه وکړه چي لقیط زمازوی دی نو دهغه قول معتبردی (په دي شرط چي ملتقط دلقیط دنسب دعوه ونه کړي) ولی چي دا دمدعی له طرف څخه داسي اقرار دی چي په هغه کي دماشوم ګټه ده ولی چي دثبوت نسب په وجه سره دماشوم شرافت لوړیږي ،او همداشان که له دوو کسانو څخه هریوه دادعوه وکړه چي دازمازوی دی اوله دوی دواړو څخه یوه هم شاهدان نه درلودل او نه لقیط دکوم یوه په قبضه کي وو نو په سبب کي دبرابروالی په وجه سره به ددواړو قول معتبروي یعنی له دواړو څخه دده نسب ثابتیږي .

(۶) او که له دوو کسانو څخه هریوه دلقیط په باره کي دادعوه وکړه چي دازمازوی دی اوله هغوئ دواړو څخه یو ه دلقیط په بد ن کي کومه نښه بیان کړه نو دلقیط حقدار دنښي بیانولو والادی ولی چي ظاهر دهغه شاهد دی په دي وجه چي نښه دهغه دکلام موافق ده .

(۷) وَمِنْ ذِمِّيٍّ وَهُوَ مُسْلِمٌ (۸) إِنْ لَمْ يَكُنْ فِي مَكَانِ أَهْلِ الذِّمَّةِ (۹) وَمِنْ عَبْدٍ وَهُوَ حُرٌّ (۱۰) وَلَا يَرِقُّ إِلَّا بِبَيِّنَةٍ (۱۱) وَإِنْ وُجِدَ مَعَهُ مَالٌ فَهُوَ لَهُ (۱۲) وَلَا يَصِحُّ لِلْمُلْتَقِطِ عَلَيْهِ نِكَاحٌ وَبَيْعٌ (۱۳) وَإِجَارَةٌ (۱۴) وَيُسَلِّمُهُ فِي حِرْفَةٍ وَيَقْبِضُ هِبَتَهُ

**ترجمه**: او (نسب يې ثابتيږي) له ذمي شخصه هم او هغه مسلمان شمارل کيږي ،که هغه دذميانو په محله کې نه وي ،او له غلام شخصه هم او هغه به ازادوي ،او غلام به نه جوړيږي مګرله په بينه سره ،او که وموندل شوله ده سره مال نو هغه دهغه دی، او صحيح نه ده ملتقط لره دهغه نکاح کول او خرڅول ،او پرمزدوري ورکول ،او هغه دي په کوم کارولګوي او دهغه هبه دي قبض کوي .

**تشريح**:(۷)قوله ومن ذمي اي ويثبت نسبه من ذمي ،يعنی که دمسلمانانو په يو ښار يايوه کلي کې لقيط وموندل شو بيا ذمي کافردعوی وکړه چې دازمازوی دی نو دلقيط نسب له دي ذمي شخصه ثابتيږي او په اتباع دارسره به استحسانا مسلمان شمارل کيږي ولی چې دذمي دعوی پردوو خبرومشتمله ده /نمبر۱. دلقيط لپاره ثبوت نسب. /نمبر۲.دلقيط نه مسلمان والی .په اوله خبروه کې دماشوم فائده ده لهذا په دي باره کې دذمي دعوی صحيح وي او په دوهمه خبره کې دماشوم نقصان دی لهذا په دي باره کې دذمي دعوی صحيح نه ده .

(۸)که يې دذميانو په کلی کې يا ديهودو يانصاری و په عبادت ځای کې ذمي لقيط وموندنو دالقيط ذمي شمارل کيږي ددي مسئلي څلورصورتونه دي،\نمبر۱،مسلمان دمسلمانانو په مکانو کې لقيط وموندی نو مسلمان شمارل کيږي، \نمبر۲،کافر دکافرانو په مکانو کې وموند نو کافر شمارل کيږي، \نمبر۳،کافر دمسلمانانو په ځايو کې وموند، \نمبر۴،مسلمان دکافرانو په ځايونو کې وموند په آخيري دوو صورتونو کې يو روايت دادی چې دمکان اعتبار به کيږي دوهم روايت دادی چې دموندونکی اعتبار به کيږي صحيح دادی چې دکو م په اعتبار کولو کې چې هغه مسلمان ثابتيږي هغه معتبر دی ولی چې دلقيط لپاره انفع دی .

(۹)قوله من عبد اي ويثبت نسبه من عبد اذاادّعاه ،يعنی که غلام دادعوه وکړه چې لقيط زمازوی دی نو دلقيط نسب له غلام شخصه ثابتيږي ولی چې په ثبوت نسب کې دلقيط فائده ده مګر لقيط به آزادوي ولی چې کله حره ښځه دغلام لپاره بچی زيږوي نو بچی آزادوي او کله مينځه دغلام لپاره بچی زيږوي نو بچی غلام وي نو دلقيط په غلامي او حريت کې شک دی مګر په بنې آدم کې اصل حريت دی لهذ ا دهغه حريت دشک په وجه سره نه باطليږي .

(۱۰)که يو چادعوه وکړه چې لقيط زماغلام دی نو دمدعی دا دعوي به نه قبليږي ترڅوچې هغه پردي شاهدان پيښ نه کړي ولی چې ظاهر داده چې لقيط آزاددی په دي وجه چې اصل په بنې آدم کې حريت دی الاداچې مدعی په دي خبره شاهدان پيښ کړي چې لقيط دهغه غلام دی .

(۱۱)که له لقيط سره پرلقيط تړل شوی مال وموندل شونو هغه مال دلقيط دی دظاهرپه اعتبارکولو سره ،ولی چې املاک دمالک په قبضه کې وي اوداmال ددي لقيط په قبضه کې دی اولقيط دازادوالی په وجه سره اهل ملک هم دی لهذا دامال دلقيط ملک دی .همداشان که مال پرداسي څاروی تړلی وي –پرکوم چې لقيط وموندل شي نو هغه مال به هم دلقيط وي لماذکرنا.

(۱۲)دملتقط (دلقيط موندونکی) لپاره جائزنه ده چې دلقيط نکاح وکړي ولی چې دنکاح کولو لپاره ولايت(ملک ياقرابت ياسلطنت)ضروري دی حال داچې په ملتقط کې صفت ولايت معدوم دی،او

همداشان دملتقط لپاره دلقيط په مال کې تصرف کول مثلا دلقيط مال خرڅول جائز نه دی ولی چې دماشوم په مال کې له پلار اونیکه ماسوا هیچالره دتصرف حق نشته،لکه مور چې دخپل زوی په مال کې تصرف نه شي کولای ولی چې د تصرف فی المال څخه غرض دمال اضافه والی دی او داپه کامله رأیه اووافر شفقت سره متحقق کیدای شي حال داچې په مورکې کامله رأیه اوپه ملتقط کې وافر شفقت نشته.

(۱۳)قوله واجارة ای لایصح اجارة اللقیط ،یعنی دملتقط لپاره په لقیط باندې مزدوري کول جائز نه ده ولی چې ملتقط دآکا په شان دی نو لکه څرنګه چې آکا ته دا اختیار نشته چې خپل وراره مزدوري وکړي همداشان ملتقط لره هم په لقيط مزدوري کول جائزنه ده .

(۱۴)او دملتقط لپاره جائز ده چې لقيط په صنعت ،هنر،زدکولو کې ولګوي ولی چې دا دلقیط دتادیب او حفاظت المال له باب څخه دی ،او که لقيط ته يو څاکوم شئ هبه کړ نو دملتقط لپاره داجائز ده چې دلقيط لپاره هغه قبض کړي ولی چې په دې کې دماشوم محض فائده ده .

## كِتَابُ اللُّقَطَةِ

دا کتاب دلقطې په بیان کې دی

لقطه ،په لغت کې هغه شی دی چې ته يې په لار کې پيدا کړي او راپورته يې کړي ،او په شريعت کې هغه محترم او غير محفوظ حق دی چې موندونکی ته دهغه مستحق معلوم نه وي .

له ماقبل سره يې مناسبت دادی چې لقيط او لقطه لفظا او معنی متقارب دي ولی چې دواړه له التقاط په معنی درفع څخه مشتق دي .بيا لقيط په بنی ادم او ،لقطه،په غيربنی ادم پوري خاص دي نودبنی ادم داظهارشرافت لپاره يې دلقيط بيان له لقطې څخه مقدم کړ.

(۱)اَللُّقَطَةُ اَلْحِلِّ وَالْحَرَمِ اَمَانَةٌ اِنْ اَخَذَهَا لِيَرُدَّهَا عَلٰى رَبِّهَا وَاَشْهَدَ (۲)وَعَرَّفَ اِلٰى اَنْ عَلِمَ اَنَّ رَبَّهَا لَا يَطْلُبُهَا (۳)ثُمَّ تَصَدَّقَ (۴)فَاِنْ جَاءَ رَبُّهَا نَفَّذَهُ اَوْ ضَمَّنَ الْمُلْتَقِطَ (۵)وَصَحَّ الْتِقَاطُ الْبَهِيمَةِ (۶)وَهُوَ مُتَبَرِّعٌ فِي الْاِنْفَاقِ عَلَى اللَّقِيطِ وَاللُّقَطَةِ وَبِاِذْنِ الْقَاضِي يَكُوْنُ دَيْنًا.

**توجمه**:دحل اوحرم لقطه أمانت ده که اوچته کړه تر څو خپل مالک ته يې ورکړي اوپرهغې يې ګواه جوړ کړل.اواعلان دي کوي ترڅو چې يې يقين شي چې ددې مالک ددې تلاش نه کوي ،بيادهغه صدقه کړي، بياکه راشي دهغې مالک نو هغه دې نافذه کړي يادې ضامن کړي اوچتونکی،اوصحیح ده د څاروی نيول،اوهغه متبرع دی په لقيط اولقطه په مصرف کولو کې اودقاضی په اجازت سره به قرض وي.

**تشريح**:(۱)لقطه که دحرم وي اوکه له حرم څخه دباندې دکوم ځای وي له ملتقط سره امانت ده په دې شرط که ملتقط دحفاظت په نيت سره اوچته کړي وي ولی چې په دې نيت سره داوچتولوشرعاً اجازت شته لهذا ضائع کیدلوپه صورت کې به ملتقط ضامن نه وي ،اوملتقط دې پردې ګواه جوړکړي چې زه دادمالک لپاره دحفاظت په نيت سره اوچتوم ولی چې دنبی کريم ﷺ ارشاد مبارک دی چې کوم کس چې لقطه وموندي هغه دې پرهغې دوه عادل ګواه جوړکړي .

(۲) دملتقط پر ذمه واجب ده چې دی به دلقطي دومره تشهیر کوي چې دده غالت گمان شي چې اوس مالک ددي تلاش نه کوي بیا دتشهیر په مدت کې روایات مختلف دي امام محمد ﷫ له امام څخه نقل کړي دي چې که چاته کومه لقطه په لاس ورغله چې دهغې مالیت (قیمت) له لسو درهمو څخه کم وي نو تر یو څو ورو څو پورې دي دهغې تشهیر وکړي ، او که لقطه داسي شئ وي چې دهغه مالیت لس درهمه یا له دي څخه زیات وي نو تر یوه کال پوري دي تشهیر وکړي ، مگر صحیح قول دادی چې دتشهیر کوم مدت متعین نه دی بلکه دومره تشهیر دي وکړي چې دملتقط غالب گمان شي چې اوس یې مالک تلاش نه کوي ولی چې نبی کریم ﷺ یو کس ته دسلو دینارو په باره کې تر دري کلونو پوري دتشهیر کولو حکم فرمایلې وو لهذا تر یوه کال پوري تشهیر متعین نه دی .

(۳) که له تشهیر څخه وروسته دلقطي مالک راغی او دلقطي په ملکیت یې گواه پیښ کړل نو ملتقط ي لقطه هغه ته وسپاري تر څو حقدار ته خپل حق ورسیږي ،لیکن که مال نه راغی نو ملتقط دي لقطه په فقیرانو صدقه کړي تر څو مالک ته دلقطي عوض یعنی ثواب ورسیږي او که یې خوښه وي نو په دي امید چې مالک راځي له خپل ځان سره دي کښیږدي .

(۴) که له صدقه کولو وروسته مالک راشي نو مالک لره اختیار دی که یې خوښه وي نو صدقه دي برقرار وساتي ثواب دي وگټي ولی چې دملتقط له طرف څخه تصدق که څه هم شریعت په اجازه سره دی مگر دمالک په اجازت سره نه دی لهذا دمالک تر اجازې پوري به موقوف وي ،او که یې خوښه شوه نو له ملتقط څخه دي ضمان وصول کړي ولی چې ملتقط دصاحب لقطي له اجازت څخه بغیر دده مال بل چاته ورکړی دی .

ف: که چاته ورک شوی شئ په لاس ورشي او هغه داسي حقیر شئ وي چې مالک خپله دهغه تلاش نه کوي مثلا یوه خورما یا یوه روپی وي یا یو پیاز یا دانگور دانه وي، او دده خیال داوي چې دا دالله تعالی نعمت دی بي ځایه ضائع کیږي ،نو هغه دي راواخلي چاته دي ورکړي یا دي خپله استعمال کړي ....... ﴿لحدیث جابر ﷜ قال رخص رسول الله ﷺ في العصا والسوط والحبل وأشباهه يلتقطه الرجل ينتفع به﴾ اخرجه ابو داؤد واحمد. (جدید معاملات کی شرعی احکام. ۱۱:۱۲)

ف: که څوک ساعت جوړونکی وي یا کاریگر یا دوبي (دجامووینځونکی) یا خیاط یا کوم بل داسي کس کوم چې دخلکو د مختلفو شیانو مرمت کوي،خلک خپل پخواني شیان دجوړولو لپاره ورته پریږدي یا دپرینځلو لپاره جامي ورکوي،له دي څخه وروسته بیرته نه راځي نو په داسي صورت کې که دمالکانو له راتلو څخه مایوس شي او په نور پریښودلو کې د خرابیدلو خطره وي نو دا ساعتونه یا جامي دصدقه کړي په خپله استعمالول یې جائز نه دی .(جدید معاملات کی شرعی احکام: ۱۱۲\۱۲)

(۵) که چاته ځاروی مثلا ،اوه ،غوا، یا اوښ ،وغیره دلقطي په ډول سره په لاس ورشي نو که دهغو دضائع کیدلو ویره وي مثلا په ښار کې غله یا په ځنگل کې ځناوروي نو ملتقط لره ددي ځارویو دحفاظت په نیت سره نیول جائز دی ولی چې په دني زمانه کې په پریښودلو کې غالب گمان دادی چې ضائع کیږي .

(۶)بياكه ملتقط دحاكم له اجازې بغير پر لقيط يالقطه خرچه وكړه نودادملتقط له طرفه تبرع او احسان دى له مالک څخه ددي مطالبه اوغوښتنه نشي كولاى ولى دصاحب لقطه پرمال دملتقط ولايت قاصردى ،او كه ملتقط دحاكم په اجازه سره پر لقطه باندي خرچه وكړه نو بيادادلقطي دمالک پردمه قرض دى ولى چي دغائب (صاحب اللقطه) پرمال دغائب دفائدي لپاره قاضي ته ولايت حاصل دى .

(۷)وَلَوْ كَانَ لَهَانَفْعٌ آجَرَهَاوَأَنْفَقَ عَلَيْهَامِنْ أُجْرَتِهَا(۸)وَإِلَّا بَاعَهَا(۹)وَمَنَعَهَامِنْ رَبِّهَاحَتَّى يَأْخُذَالنَّفَقَةَ(۱۰)وَلَا يَدْفَعُهَاإِلَى مُدَّعِيهَابِلَا بَيِّنَةٍ (۱۱)فَإِنْ بَيَّنَ عَلَامَتَهَاحَلَّ لَهُ الدَّفْعُ بِلَاجَبْرٍ (۱۲)وَيَنْتَفِعُ بِهَالَوْفَقِيرًاوَإِلَّاتَصَدَّقَ عَلَى أَجْنَبِيٍّ وَصَحَّ عَلَى أَبَوَيْهِ وَزَوْجِهِ وَوَلَدِهِ لَوْفُقَرَاءَ.

**ترجمه**:كه لقطه دنفع شئ وو نو په اجاره دي وركړي او له اجرت څخه دي پرلقطه مصرف كوي ،كه نه نو بيادي خرڅ كړي، او هغه دي منع كړي له مالک څخه ترڅو چي ويسي له هغه څخه نفقه ،اونه دي وركوي لقطه دهغي دعوى كونكى لره بغيرله بينّه ،نوكه هغه بيان كړه دهغي نښه نوور كول جائزدى مگرجبرنشته ،اوله دي څخه دي خپله نفع حاصلوي كه فقيروي كه نه نو پركوم اجنبي دي صدقه كړي اوپرخپل موراوپلاراوپرخپله ښځه اوپرخپل زوى باندي كه داكسان فقيران وي .

**تشريح**:(۷)كه لقطه داسي شئ وو چي دهغه منافع وي مثلاكوم داسي څاروى وو چي په مزدوري وركول كيداى شو نوملتقط دي هغه قاضي ته وړاندي كړي ترڅوقاضى دهغه كيدلوپه باره كي فرمان جاري كړي اوقاضى هغه په كرايه وركړي اوله هغي كرايي څخه حاصل شوي روپي دي پرلقطه مصرف كړي ولى چي په دي كي دمالک مال دهغه پرملكيت بغيرد قرض له لزوم څخه باقي پاتي كيږي .

(۸)قوله والآباعها اى وان لم يكن لهانفع باعها.يعنى كه دهغه څاروى .منافع نه وي نو كه داويره وه چي پرهغه خرڅه كول دهغه اصل قيمت لاندي كوي (يعنى ترقيمت زيات مصرف پري كيږي )نوقاضى دهغه خرڅ كړي او ملتقط ته دي دهغه دقيمت دمحفوظ ساتلوحكم وكړي ترڅولقطه په معنوي لحاظ سره باقي پاتي شي.

(۹)كه ملتقط دقاضي په حكم سره پر لقطه باندي خرچه وكړه اوس دلقطي مالک حاضرشواولقط يي طلب كړه نوملتقط لره جائزده چي له مالک څخه لقطه منع كړي ترهغه وخت پوري چي هغه ملتقط ته خرڅه اداء نه كړي كومه چي ده پرلقطه مصرف كړي ده ولى چي دملتقط له طرف څخه پرلقطه مصرف شوي نفقه دلقطي دمالک پرذمه دين ده په دي وجه دهغي په عوض كي دلقطي له مالک څخه دلقطي دمنع كولوحق ده لره حاصل دى .

(۱۰)كه يوڅو ک ملتقط ته حاضرشو او دادعوه يي وكړه چي دالقطه زماده نو ترڅوچي هغه شاهدان حاضرنه كړي ملتقط دي لقطه هغه ته نه وركوي ، ﴿لقوله ﷺ البَيِّنَةُ على المُدَّعِي﴾(يعنى شاهدان دمدعى پر ذمه دي )نودنوردعووپه شان دملک لقطه ددعوي لپاره هم بيّنه لازمي ده .

(۱۱)اوكه دي مدعى دلقطي كومه نښه وشودله (مثلالقطه دراهم دي مدعى دهغووزن ياعددوغيره بيان كړ)مگربينه يي پيښ نه كړه نوملتقط لره جائزده چي لقطه هغه ته وسپاري ولى چي دنښي په شودلوسره ظاهره همداده چي لقطه دهغه ده، ليكن كه مدعى دلقطي نښه وشودله مگربياهم ملتقط دلقطي له وركولوڅخه انكاروكړنوقضاء به ملتقط دلقطي په وركولونه مجبوره كيږي ولى چي كله غيرمالک دشئ

دنبي په معلومولو سره نبني بيانوي لهذا انبه شو دل دملک دليل نه دی په دي وجه به ملتقط نه مجبور کيږي.

(۱۲)که ملتقط په خپله فقيرو و نو هغه لره له تشهير څخه وروسته له لقطي څخه نفع اخيستل جائز ده ولی چې په دي کې دجانبينو رعايت دی يعنی ملتقط لره انتفاع او مالک لره ثواب دی .او که ملتقط په خپله غنې وي نو بيادي هغه پر اجنبي صدقه کړي﴿لقوله ﷺ فان لم يات صاحبها فليتصدق به﴾(که دلقطي مالک نه راغی بيادي هغه صدقه کړي )او همداشان که دهغه پلار ،زوی او ښځه فقيران وي نو ملتقط لره دا جائز ده چې لقطه پر هغو صدقه کړي ولی چې دفقير کيدلو په وجه سره هغوئ دصدقي محل دي همداشان په دي کې دجانبينو رعايت هم دی.

ف:که دکوم کس په مسجد کې چپلي يابوټونو وغيره بدل شول ياپه طياره يابس کې يې بيګ وغيره بدل شول په غلطي سره دکوم بل چابيګ په لاس ورغی نوايادهغه استعمالول جائزدی اوکه يا؟ددي شرعی حکم دادی چې ددي استعمال جائزنه دی ولی چې اولاًکه داسي وه هم شي نودايقين نشته چې چاچې بوټونه وړي دي دابوټونه دهغه دي ياکوم چاچې بيګ وړی دی تاته په لاس درغلی بيګ دهغه دی اوکه داسي هم وي نوهم ځرنګه چې ددوئ ترمنځ کومه دمبادلي معامله نه ده شوي ،په دي وجه کوم بوټ ياجامه چې په لاس درغلي ده دهغې حکم دلقطي دی ،يعنی اول به داکوښښ کيږي چې دهغې مالک پيداشي اوهغه ته بيرته ورکړل شي ،اوکه دمالک له پيداکيدلو څخه مايوس شي نودمالک له طرفه دي صدقه کړي ،هوالبته دمالک له پيداکيدلو څخه دمايوسي په صورت کې که داکس په خپله مستحق زکوة وي نو هغه په خپله هم استعمالولی شي كمافی الهندية:امراة وضعت ملائتها فجاءت امراة اخرى وضعت ملائها ثم جاءت الاولى واخذت ملاة الثانية وذهبت لايسع للثانية ان ينتفع ملائها ،والحلية ان يتصدق الثانية بهذه الملاة على بنتها ان كانت فقيرة على نية ان يكون الثواب لصاحبها ان رضيت ثم تهب البنت الملاة منها فيسعها الانتفاع بها كاللقطة،وكذالوسرق مكعبا وترك عوضا (ماخوذازامدادالمفتين بتغيير:ص ٨٧٦)

## كِتَابُ الآبِقِ

دا کتاب دآبق په بيان کې دی

آبق:له اباق څخه دی د ،اباق،لغوي معنی تښتيدل ده .دفقهاؤپه اصطلاح کې ،آبق،هغه غلام دی کوم چې له خپل مالک څخه قصداً وتښتي ،ثعالبي رحمه الله فرمايي آبق هغه (غلام)دی چې دمولی له ظلم بغير وتښتي او که دمولی دظلم وجه سره وتښتي نوهغه ته آبق نه بلکه هارب وي کيږي همداوجه ده چې اباق عيب دی او هرب عيب نه دی.

د «کتاب الآبق» له ماقبل سره مناسبت دادی چې په «التقاط» او «اباق» دواړو کې دمال علی عرض الزوال وروسته دوهم ځل احیاء ده، البته په لقطه کې دزوال ذات په اعتبار سره ده، او په اباق کې دمالک دانتفاع په اعتبار سره ده او ذات له انتفاع څخه مقدم دی په دي وجه یې دلقطه احکام وړاندي ذکر کړل.

(۱) أخذُهُ أَحَبُّ إن قَوِيَ عليه (۲) وَمَنْ رَدَّهُ من مُدَّةِ سَفَرٍ وهو مَسِيرَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَلَهُ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا (۳) وَلَوْ قِيمَتُهُ أَقَلَّ منه (۴) وَإِنْ رَدَّهُ لِأَقَلَّ منها فَبِحِسَابِهِ (۵) وَأُمُّ الْوَلَدِ وَالْمُدَبَّرُ كَالْقِنِّ (۶) وَإِنْ أَبَقَ من الرَّادِّ لَا يَضْمَنُ (۷) وَيَشْهَدُ أَنَّهُ أَخَذَهُ لِيَرُدَّهُ (۸) وَجُعْلُ الرَّهْنِ على الْمُرْتَهِنِ (۹) وَأَمْرُ نَفَقَتِهِ كَاللُّقَطَةِ

**ترجمه:** دتښتیدلي غلام نیول افضل دي که یې پر هغه قدرت وو، او چاچې ردکړ هغه له مدت سفر څخه نو هغه لره به څلویښت درهمه وي، که څه هم دغلام قیمت له دي څخه لږ وي، او څوک چې هغه وارد کړي له کمي فاصلي څخه نو په همدي حساب سره به وي، او مدبر او ام ولد دخالص غلام په شان دي، او که له راوستونکي څخه هغه وتښتیدی نو هغه ضامن نه دی، او ګواه دي جوړ کړي چې زه دانیسم دردولو لپاره، او درهن اجرت پر مرتهن دی، او دهغه دنفقي حکم دلقطي په شان دی.

**تشریح:** (۱) دچاد تښتیدلي غلام دهغه لپاره نیول مستحب دی په دې شرط چې دنیولو والا دهغه پر نیولو او مالک ته په بیرته راوستلو باندي قادروي ولی چې دغلام تښتیدل داسې دي لکه غلام چې مړشي نو نیول او بیرته راوستل یو قسم دمولی دحق ژوندی کول دي، که دنیولو والا قدرت نه درلود نو بیا دتښتیدلي غلام نیول هم مستحب نه دی.

(۲) که چا ترمسافت سفر یعنی دري ورځي یازیات ترمسافت سفر تښتیدلی غلام دهغه مولا ته راوستی نو پر مالک باندي دراوستونکي اجرت څلویښت درهمه دی داحکم استحساناً دی، «دقیاس تقاضا داده چې دي کس ته هیڅ ورنه کړي ولی چې دادسې دی لکه چې څوک داسې غلام مولی ته راولي له کوم څخه چې لاره ورکه شوي وي نوراوستونکی لره هیڅ نشته نو په کاروه چې دتښتیدلي غلام دراوستلو په صورت کې هم هیڅ واجب نه وای. داستحسان وجه داده چې دتښتیدلي غلام راوستونکی لره دڅه په ورکولو دصحابه کرامو ﷺ اجماع ده البته په مقدار کې ددوئ په منځ کې اختلاف دی ځینو څلویښت درهمه واجب کړي دي او ځینوله دي څخه لږ، نو موږ داسې تطبیق وکړچې که یې له مسافت سفر څخه رواستی نو څلویښت درهمه واجب دي او که یې له کم مسافت څخه رواستی نو په همدي حساب سره به واجبیږي.

(۳) قوله ولو قیمته اقل منه ای یجب اربعون درهما ولو کانت قیمته اقل من اربعین. یعنی دمسافت سفر څخه دراوستونکي لپاره انعام څلویښت درهمه دي که څه هم دهغه قیمت له څلویښتو دراهمو څخه لږ وي یعني که چا تښتیدلی غلام له مسافت سفر څخه دهغه مولا ته راوستی مګر دغلام قیمت تر څلویښتو دراهمو لږدی (مثلا دغلام قیمت یو دیرش ۳۱ درهمه دی) نو هم دراوستلو والا جعل څلویښت درهمه دی (جعل هغه مقرر حق دی کوم چې دغلام راوستونکي لپاره دهغه پر مولا شرعاً واجب دی) ولی چې حضرت عمرو ابن دینار ﷺ فرمایي چې زموږ یې له وخته اورو چې حضور ﷺ انعام څلویښت درهمه مقرر کړی دی نو دغلام دقیمت دکموالي په وجه سره به موږ انعام نه کمه وو لکه په صدقه فطر کې که دغلام قیمت تر صدقه فطر کم وو نو صدقه فطر نه کمیږي، او دامام محمد رحمه الله په نزد به له ټول قیمت څخه یو درهم کم کړي باقي پاته

(ديرش ۳۰درهمه )به راوستونكي ته په اجرت كې وركړې ولې چې له اجرت وركولو څخه مقصد دادى چې دتښتيدونكو غلامانوپه بيرته راوستلو خلك باعث كړاى شي ترڅو داصل مالک مال محفوظ پاته شي نو په مذكوره بالا صورت كې دي دغلام له قيمت څخه يو درهم كم كړي ترڅو مالک ته هم څه فائده ورسيږي .

(۴)او كه له درې ورځوڅخه له كم مسافت څخه يې راوستى نواجرت به همدي حساب سره وي لمابينا ،نودده ورځوله مسافت څخه دراوستونكى لپاره به اجرت دڅلويښتودراهمودوه ثلثه وي اوديوې ورځې له مسافت څخه راوستونكى لره به يوثلث وي .

(۵)مدبر او ام ولده هم دغلام په حكم كې دي يعنى دهغوئ راوستونكى هم دمزدوري مستحق دى لكه څرنګه چې دغلام راوستونكى دمزدورى مستحق دى ولې چې مدبر اوام ولده هم دغلام په شان دخپل مولى مملوک دي لهذا دهغوئ په بيرته راوستلو كې دمولى دملک احياء ده .

(۶)كه دغلام له راوستونكې څخه غلام وتښتيدى نو پر راوستونكي هيڅ تاوان نه واجبيږي ولې چې غلام دهغه په لاس كې أمانت دى اوأمانت كه له تعدى اوظلم څخه بغيرتلف شي نوپرهغه ضمان نه واجبيږي ،اودهغه لپاره به اوس اجرت هم نه وي ولې چې غلام دده په لاس كې داسي دى لكه څرنګه چې مبيع دبائع په لاس كې وي لهذا ترڅو چې غلام مالک ته ونه سپاري داجرت مستحق نه دى .

(۷)دتښتيدلې غلام دنيولو والاته په كاره ده چې دغلام دنيولو په وخت كې څوک پردي خبره ګواه جوړكړي چې زمادنيولومقصددى ترمالک پوري رسول دى ،دطرفينو رحمهماالله په نزد دغلام پر راوستونكې ګواه جوړول واجب دي او كه يې څوک ګواه نه كړل نوداجرت مستحق نه دى ولې چې به دي صورت كې داګمان كيږي چې ده دي دخپل ځان لپاره نيولى وي .

(۸)كه تښتيدلى غلام اصل مالک يو چاته بطور رهن وركړى وو او هغه ،غلام،له مرتهن څخه وتښتيدى نو دغلام راوستونكې اجرت د مرتهن پر ذمه دى (په دې شرط چې ټول غلام مضمون وې يعنى دغلام قيمت دپور په اندازه وي)ولې چې دمرهون غلام مرتهن ته په بيرته راوستلو كې دمرتهن دقرض احياء ده لهذا اجرت به يې هم دمرتهن په ذمه لازم وي .

(۹)دتښتيدلې غلام دنفقه حكم دلقطه دحكم په شان دى يعنى دهغه پر خوړلو وغيره چې كومه خرچه شوې وي په هغه كې هغه تفصيل دى كوم چې پر لقطه باندې دخرچه كولو په بيان كې تيرشو چې كه يې دقاضي په حكم سره خرچه كړي وه نو له مالک څخه به يې ورې او كه يې دقاضي له حكم څخه بغيرخرچه كړې وه نو دهغه دوصول كولو حق نه لرې ،ولې چې آبق هم په حقيقت كې لقطه ده .

## كتاب المفقود

### داكتاب دمفقود داحكامو په بيان كې دى

مفقود ،په لغت كې ورک شوى ته ويل كيږي ،اوشرعاًهغه غائب كس دى دكوم په باره كې چې معلومه نه وي چې ژوندى دي چې دراتلوانتظاريې وشي اوكه مړشوى دى.له ماقبل سره يې مناسبت دادى چې ، لقيط

،لقطه ،آبق،او مفقود،هريو په غائب اونامعلوم والى کې برابرحيثيت لري په همدي مناسبت يې دآبق داحکامو له ذکرکولو څخه وروسته دمفقود احکام ذکرکړي دي .

(١)هو غائب لم يدر موضعه وحياته وموته (٢) فينصب القاضي من يأخذ حقه ويحفظ ماله ويقوم عليه (٣) وينفق منه على قريبه ولاداً وزوجته (٣) ولا يفرق بينه وبينها (٥) وحكم بموته بعد تسعين سنة وتعتد امرأته (٦) وورث منه حينئذ لا قبله ولا يرث من أحد مات.

**ترجمه**:مفقود هغه غائب دى دکوم چې ځاى اوژوندا ومرګ معلوم نه وي ،اومقرردي کړي قاضي کوم کس چې هغه وصول کړي دهغه حق او حفاظت وکړي دهغه دمال اوڅارنه يې وکړي ،اومصرف کړي دهغه له مال څخه دهغه دقرابت ولادت پر قريبانو او دهغه پرښځي ،اوتفريق دي نه کوي دهغه او دهغه دښځي په منځ کې ،اوحکم دي وکړي دهغه دمرګ له نيوي کلونو څخه وروسته اوعدت دي تيرکړي دهغه ښځه ،اوميراث دي تقسيم کړاى شي دهغه په دي وخت کې نه له دي څخه وړاندي اوهغه وارث نه دى دهيچا.

**تشريح** :(١)مصنف رحمه الله په خپل دي عبارت سره دمفقودتعريف کړى دى چې مفقودهغه غائب کس دى دکوم چې داوسيدلو ځاى معلوم نه وي اونه دهغه ژوندا ومرګ معلوم وي .

(٢)کله چې کوم کس داسي ورک شي چې دهغه داوسيدلو ځاى معلوم نه وي ترڅو دهغه تلاش وشي اونه دامعلومه وي چې هغه ژوندى دى اوکه مړشوى دى نو اوس به قاضي يوداسي کس مقررکړي کوم چې دغائب دمال حفاظت اوڅارنه وکړي اودغائب حقوق (که پرخلګو وي )وصول کړي ولى چې قاضي به دهرداسي کس لپاره څارونکى مقررکوي کوم چې دخپل ذاتي امورو له څارولو څخه عاجزوي اوغائب همداشان دى چې دخپلو ذاتي امورو څارنه نه شي کولى .

(٣)قاضي به دمفقود له مال څخه دمفقود پرښځي او دهغه پرهغو قريبانو باندي خرڅ کوي دکومو چې له مفقود سره د ولادت قرابت وي يعنى دهغه پر اصولو او فروعو به يې مصرف کوي په دي باره کې قاعده داده چې کوم کسان چې د مفقود دحضور په وخت کې بغير دقاضي له حکمه دمفقود په مال کې دنفقي حقداروي هغوئ ټولو ته به دمفقود غائب کيدلو په صورت کې هم دمفقود له مال څخه نفقه ورکول کيږي ولى چې په دي وخت کې دقاضي قضاء صرف تعاون شمارل کيږي قضاء على الغائب نه شمارل کيږي،او کوم کسان چې دمفقود دحضور په وخت کې بغير دقاضي له حکمه دنفقي حقدار نه وي نو دمفقود غائب کيدلو په صورت کې به دي کسانو ته دقاضي په حکم سره دمفقود له مال څخه نفقه نه شي ورکول کيدلاى ولى چې په دي وخت کې دنفقي وجوب دقاضي په قضاء سره ثابتيږي حال داچې قضاء على الغائب جائزنه ده .

**الالغاز** :اى رجل يعد ميتا وهو حي بنعم؟

**فقل** : المفقود لان له فيما يرجع الى ماله حكم الحياة وفيما يعود الى غيره حكم الممات ،ويمكن ان يجاب بانه الكافر لانه يعد من جملة الاموات بدليل قوله تعالى (كيف تكفرون بالله وكنتم امواتا فاحياكم) يعنى كنتم كفارا فهداكم الى الايمان .(الاشباه والنظائر)

(۴)قاضي به دمفقود اودهغه دښځي ترمنځ تفريق نه کوي،امام مالک رحمه الله فرمايي چې کله دمفقود له غائب کيدلو څخه وروسته څلور کاله تيرشي نو قاضي دمفقود او دهغه دښځي ترمنځ تفريق کولى شي له تفريق کولو څخه وروسته د وفات دعدي په تيرولو سره چې چيرته وغواړي نکاح کولى شي دامام

مالک رحمه الله دليل دادى چې په مدينه منوره کې يو کس پيريانو وړى وو نو حضرت عمر رضي الله عنه دهغه او دهغه دښځې ترمنځ له څلورو کلو تيريدلو وروسته تفريق کړى وو .

داحنافو رحمهم الله دليل دادى چې حضور ﷺ فرمايلي دي ،چې دمفقود ښځه دهغه زوجه ده ترڅوچې دي ته (دمفقود له طرف څخه دهغه دمرګ )خبر شي ،او حضرت علي رضي الله عنه دمفقود دښځې په باره کې فرمايلي دي ،هي امرأة ابتليت فلتصبر حتى يستبين موت او طلاق،(هغه دهغه ښځه ده مبتلى کړل شوې ده نو هغې ته صبرکول په کاردى ترڅو چې دخاوند مرګ معلوم شي يادطلاق خبر وروسيږي )،دامام مالک رحمه الله ددليل ځواب دادى چې له حضرت عمر رضي الله عنه څخه دحضرت علي رضي الله عنه دقول طرف ته رجوع ثابته ده لهذا دحضرت عمر رضي الله عنه په قول سره استدلال کول صحيح نه دى .

(۵)کله چې دمفقود دولادت له ورځې څخه نيوي کاله پوره شي نو قاضي به دهغه دمرګ حکم وکړي او حسن ابن زياد رحمه الله له امام ابو حنيفه رحمه الله څخه نقل کړى دى چې کله ديوم ولادت څخه،يو سل شپيته ۱۶۰،کاله پوره شي نو موږبه دمفقوددمرګ حکم ورکوو ،ظاهر مذهب دادى چې دمفقود دهمزولو له مرګ څخه به اندازه کيږي چې مفقودهم اوس مړشوى دى ،له امام ابويوسف رحمه الله څخه دسلو کالو ميعاد مروى دى ،متأخرينو علماؤ دتکليف دفع کولو او پرخلګو دآسانتيالپاره شپيته کاله مدت مقرر کړى دى ،په هر حال چې کله دمفقود دمرګ حکم وکړل شي نو دهغه پر ښځې له هغه وخت څخه دوفات عده تيرول واجب ده اوپه همدي وخت کې چې دمفقودکوم وارثان موجودوي دمفقود مال به پرهغوئ تقسيميږي،دمفقودکوم وارثان چې پرمفقوددمرګ له حکم کولو څخه وړاندي مړه شوي دي هغه به دمفقودپه وراثانو کې نه شمارل کيږي ولى چې له حکم بالموت څخه وړاندي مفقودژوندى شمارل کيږي.

ف:څرنګه چې عملاًدمفقودالخبر ښځه ټول ژوندبغيرله نکاح څخه محروم ساتل يومشکل کارهم وواودديروفتنوباعث هم جوړيداى شو،په دي وجه متأخرينوپه دي مسئله کې دمالیکه ودرأيې اختيارولو اجازت ورکړي ولى الشامية:لوافتى بقول مالک رحمه الله فى موضع الضرورة لاباس به(يعنى دضرورت په وخت کې دامام مالک رحمه الله پرقول په فتوى ورکولو کې څه حرج نشته ).

ف:دمفقود اودهغه دښځې ترمنځ دتفريق طريقه داده چې ښځه به قاضي ته دنکاح دفسخ کولو دعوه پيش کړي،قاضي به اولاًدمعاملي تحقيق وکړي،له خلګو څخه به پوښتنه وکړي،داخباراتو او اشتهاراتو په ذريعه سره به معلومات وکړي، نو چې کله دمفقود هيڅ حال معلوم نه شي نو قاضي به اوس ښځې ته څلور کاله وخت ورکړي چې په هغه کې دادخاوند انتظاروکړي ،دقاضى له حکمه بغيردله خپله طرفه دښځې انتظارمعتبرنه دى ،او په کوم ځاى کې چې شرعي قاضي نه وي نوهلته جماعة المسلمين هم داکارسرته رسولى شي ،له څلور کاله انتظار کولو وروسته که خاوند نه راغى نو اوس به ښځه له خپل طرفه دوفات عده تيره کړي له دي څخه وروسته به دبلي نکاح مجازه وي ،ددي عدت لپاره قاضى ته رجوع کول ضروري نه ده،کله چې دوفات عده پوره شي نواوس هغه له کوم بل کس سره نکاح کولى شي.(جديد فقهي مسائل ۳،ص ۱۳۶)

ف:په دي دورکې که چيرته شرعي قاضي نه وي نوهلته به څه کوي ؟په دي باره کې حکيم الامت حضرت مولانااشرف علی تهانوی نورالله مرقده فرمايي،دهندوستان په کوموولايتونوکې کې چې شرعي قاضيان موجوددي په هغوځايوکې خومعامله اسانه ده اوپه حکومتي علاقوکې چې چيرته شرعي قاضي نشته په هغوئ کې هغه حکام جج مجسټريټ وغيره کوم چې دحکومت له طرف څخه په دي قسم معاملاتوکې دفيصلي کولواختيارلري که هغوئ مسلمان وي اودشرعي قاعدي موافق فيصله کوي نودهغوئ حکم هم دقضاء قاضي قائم مقام ګرځي،لمافي الدرالمختار:ويجوزتقلدالقضاء من السلطان العادل والجائرولوکافراذکرمسکين،وغيره ليکن که په کوم ځای کې فيصله کونکی حاکم غيرمسلم وي نودهغه فيصله بالکل غيرمعتبره ده دهغه په حکم سره فسخ وغيربالکل نه شي کيدلای ،لان الکافرليس باهل للقضاء علی المسلم کماهومصرح في جميع کتب الفقه ......اوکه فيصله کوم جماعت (ټولی)ته وسپارل شي لکه چې ځيني وختونه دججانو کميټی. ته سپارل کيږي ياپه پينځ کې وړاندي کيږي يادځوکسانوکميټی. ته سپارل کيږي نوپه دي صورت کې ددي ټولو ارکانومسلمان والی شرط دی که کوم غيرمسلم جج اومجسټريټ اوممبرهم ددي رکن وونوشرعاًددي جماعت فيصله په هيڅ قسم معتبره نه ده په داسي فيصله سره تفريق وغيره بالکل صحيح نه دي .

اوپه کوم ځای کې چې مسلمان حاکم موجودنه وي يادمسلمان حاکم په عدالت کې دمقدمي دپيښولو اختيارقانونانه وي يامسلمان حاکم دقواعدشرعيه مطابق فيصله نه کوي نوپه دي صورت کې دفقه حنفي مطابق خوښځي لره دجلاوالی لپاره بغيردخاوندله طلاق وغيره څخه علاوه هيڅ صورت نشته اوحتی الوسع لازم ده چې دخلع وغيره کوښښ وکړي .ليکن که خاوندپه هيڅ طريقه سره نه منل ياد ليوتوب ياورکوالی په وجه سره له هغه څخه خلع وغيره ممکنه نه وه اوښځي لره دصبرهمت نه وو نومجبوراً دمالکي مذهب مطابق ددينداروسلمانانوپه جرګه کې دمعاملي دوړاندي کولو ګنجائش شته ولی چې دمالکيه وپه مذهب کې دقاضي وغيره دنه موجودوالی په حال کې دا صورت هم جائزدی چې دکلي ددينداروسلمانانويو جماعت دکوموچې تعدادلږترلږه دري وي جرګه وکړي اودواقعي په تحقيق کولوسره دشريعت موافق حکم وکړي نوداهم دقضاء قاضي قائم مقام ګرځي ......اودضرورت شديده اوابتلاء عام په وخت کې دحنفيه وپه نزددنوروائمه ودمذهب په اختيارو لوسره پرهغه فتوی ورکول هم جائزده ليکن عوامولره په خپله رأيه سره په کومه مسئله کې چې وغواړي دداسي کولواجازه نشته بلکه ددېراحتياط ضرورت دی .....اوپه دي زمانه کې احتياط په دي دول سره کيدای شي چې ترڅوپوري چې له محققواومتدينوعلماء کرامو څخه متعددحضرات په کومه مسئله کې دضرورت دتحقق په تسليمولوسره دبل امام په مذهب فتوی ورنه کړي ترهغه وخت پوري دي بالکل دخپل امام مذهب نه پريږدي ولی چې دغيرپه مذهب په عمل کولوکې داشرط دی چې داتباع هوی پراساس نه وي بلکه دضرورت داعيه په وجه سره وي اوضرورت هغه معتبردی کوم چې علماء اواهل بصيرت ضرورت وګڼي ....الخ .(حيله ناجزه :ص۳۳تا۳۵)

ف:دمفقودښځي ته چې دقاضي په عدالت کې دفسخ نکاح له درخواست څخه وروسته کوم دڅلورو کالودانتظارحکم ورکړل شوی دی داپه دي صورت کې دی چې دښځي لپاره دنفقي اوګذاره کولوهم څه

انتظام وي او له عفت او عصمت سره ددې مدې په تيرولو قدرت هم وي او که ددې دنفقې او ګذارې کولو هيڅ انتظام نه وي نه دخاوند له مال څخه او نه دکوم عزيز او قريب يا حکومت په تکفل سره او په خپله هم په عفت او عصمت سره دمزدورۍ په کولو خپله ګذاره نه شي کولی، نو تر څو پورې چې صبر کولی شي دخاوند انتظار دې وکړي چې دهغه مده به تريوې مياشتې کمه نه وي له دې څخه وروسته دې دقاضی یا کوم مسلمان حاکم په عدالت کې دفسخ نکاح دعوی دائره کړي.

او که دنفقې او ګذاره کولو انتظام خووي مګربغیرله خاوند څخه په اوسيدلو کې دخپل عفت او عصمت قوی انديښنه وي نو له يو کال صبر کولو څخه وروسته دې قاضی ته مرافعه وکړي او په دواړو صورتونو کې به دګواهانو په ذريعه سره دا ثابتوي چې ددې فلانکی خاوند له دومره مدې څخه غائب دی او هغه ددې لپاره هيڅ نان او نفقه نه ده پريښې ،او نه يې څوک دنان او نفقې ضامن جوړ کړی دی او دې خپله نان او نفقه هغه ته ورمعاف کړي هم نه ده ،او پردې به ښځه قسم هم کوي،او په دوهم صورت يعنی دعفت دخطرې په حالت کې به قسم اخلې چې زه بغيرله خاوند خپل عفت نه شم ساتلای، قاضی ته چې کله دا ثبوت مکمل شي نو قاضی به ددې ته ووايې چې ماستانکاح فسخ کړه ،يا به دخاوند له طرف څخه طلاق ورکړي يا به خپله ښځې ته اختيار ورکړي چې هغه پرخپل نفس طلاق واقع کړي او کله چې ښځه پرخپل ځان طلاق واقع کړي نو قاضی به دا طلاق نافذ کړي . (جديدمعاملات کې شرعی احکام: ۱۲۰/۲).

ف:داسې خاوند چې بالکل لادرکه نه وي ،ليکن دهغه کومه متعين درک هم نه وي ،کله اوريدل کيږي چې هلته دی او کله دلته دی ليکن ښځې ته نه راځي او نفقه نه اداء کوي دي ته په اصطلاح کې غائب غيرمفقود ويل کيږي ،دنفقې دنه اداء کولو او له جنسي حق څخه دمحرومولو په وجه سره دښځې په غوښتنه سره قاضی ددې نکاح هم فسخ کولی شي ،دامام احمدپه نزد که دده يو معين درک وي ،خطو نه يې هم راځي ليکن نفقه نه ورکوي يا نفقه هم اداء کوي ليکن کورته په نه راتلو سره قصدا ښځې ته تکليف ورکوي او هغه له صنفي تقاضا و څخه محرومه ساتي نو هم قاضی ددې نکاح فسخ کولی شي نو کله چې په دې صورت کې دنکاح دفسخ کولو ګنجائش شته حال دا چې دخاوند درک هم شته نو که له سره دهغه هيڅ درک نه وي او هغه تښيدلی اوسي نو ښځې لره دهغه له ظلم او دهغه له طرف څخه درسيدونکی ضرر څخه دخلاصولو لپاره به فسخ نکاح په طريقه اولی سره جائزوي .(جديدفقهی مسائل: ۱۴۳/۲)

(۶)دمفقود دغائب والی په حالت کې چې دهغه کوم قريب مړ کيږي مفقود به دهغه وارث نه متصور کيږي ولی چې دمفقود ژوند متحقق نه دی او دوارث والی لپاره دمورث مرګ او دوارث حيات شرط دی ،په دې باره کې قاعده داده چې مفقود دخپل ځان په باره کې ژوندی شمارل کيږي لهذا دهغه ښځه له بل چا سره نکاح نه شي کولی او دهغه مال په وارثانو نه شي تقسيمیدلی وغيرذالک . او مفقود دنوروپه حق کې مړ شمارل کيږي لهذا هغه به دکوم قريب وارث نه وي .

(۷)فلو كان مع المفقود وارث يحجب به لم يعط شيئا (۸) وان انتقص حقه به يعطيه اقل من النصيبين ويوقف الباقي (۹) كالحمل

**ترجمه** :او که وي له مفقود سره کوم داسي وارث چې هغه دده په وجه سره محجوب کیږي نو هغه ته به هیڅ نه ورکول کیږي، او که دهغه حق کمیږي دده په وجه سره نو ورکول کیږي به هغه ته له دوو حصو څخه کمه حصه ،او باقي به موقف ساتل کیږي، دحمل په شان.

**تشریح** :(۷)که دمفقود کوم قریب مړشو اوله مفقود سره ددې میت کوم داسي وارث هم شته چې دمفقود په موجودوالی کې هغه وارث له ترکې څخه محرومیږي نو داسي وارث ته به هیڅ نه ورکول کیږي ولی چې مفقود حکماً موجود په حکم کې دی ترڅو چې قاضي دده دمرګ حکم ونه کړي.

(۸)او که له مفقود سره ددې میت یو داسي وارث وي چې دمفقود په موجودوالی کې صرف دهغه حصه کمیږي محرومیږي نه نو دمفقود په موجودګی او غیرموجودګي کې چې په کوم صورت کې ده ته کمه حصه حاصلیدله هغه به ورکول کیږي او باقي به ملتوی پاتې کیږي مثلا یو کس دوه لوڼې او یو مفقودزوی او یو لمسی پریښودا او مړشو او دده مال له کوم اجنبی سره دی او دې اجنبي او وارثانو دده دزوی په مفقودوالی اتفاق وکړاو دواړولوڼو میراث طلب کړنو دوئ ته به له ثلثان او نصف څخه کم یعنی نصف میراث ورکول کیږي ولی چې داهغه وارثان دي دکوموحصه چې دمفقود په وجه له ثلثان څخه دنصف طرف ته کمیږي نو ددوئ حصه نصف متیقنه ده لهذا دوئ ته به نصف میراث ورکول کیږي او باقي نصف به موقوف پاتې کیږي او لمسیانو ته به هیڅ نه ورکول کیږي ولی چې داهغه وراث دی کوم چې دمفقود په وجه سره محرومیږي او دمفقود مرګ څرنګه چې یقیني نه دی لهذا دشک په وجه به دمیراث مستحق نه ګرځي.

(۹)یعنی په مذکوره بالاصورت دحمل دصورت په شان دی چې که له حمل سره نور وارثان وي نو که داسي وارث وي کوم چې دحمل په وجه سره ساقطیږي نو هغه ته به حصه نه ورکول کیږي او که داسي وارث وي چې دهغه حصه دحمل په وجه سره کمیږي نو هغه ته به کمه حصه ورکول کیږي ولی چې همدا متیقنه ده مثلاً کوم کس مړشو شاته یې دوه زامن او یو حمل پریښودنو دامام ابویوسف رحمه الله دقول مطابق به یو ثلث مال موقوف پاتې کیږي او دوه ثلثه به زامنو ته ورکول کیږي داهغه صورت دی په کوم کې چې دحمل په وجه سره دموجوده وارثانو حصې کمیږي ولی چې که حمل نه وای نو موجوده زامنو ته به نصف نصف ورکول کیدی دحمل په وجه سره ددوئ حق له نصف څخه دثلث طرف ته کم شو،همدا شان که کوم کس مړشو او شاته یې دوه ورنوا و حمل پریښودنو په دي صورت کې به ټول میراث موقوف وي داهغه صورت دی په کوم کې چې دحمل په وجه سره موجود ورثاء محرومیږي.

## كِتَابُ الشِّرْكَةِ

### داکتاب دشرکت په بیان کې دی

شرکت په لغت کې دوه یا زیاتې حصې په دې ډول یو ځای کول چې په هغو کې امتیاز نه کیږي ته ویل کیږي، مجازاً عقد شرکت ته هم شرکت ویل کیږي او شرعاً هغه.عقدته ویل کیږي په کوم کې چې دمتشارکینو اشتراک په رأس المال او منفعت دواړو کې وي.

له ماقبل سره يې مناسبت دادی چې په شريکينوکې دهريوه مال له هغه بل سره امانت وي لکه دمفقودمال چې له حاضرکس سره امانت وي په دي مناسبت سره مصنف رحمه الله له کتاب المفقودڅخه وروسته کتاب الشرکة ذکرکړ.

دشرکت جوازپه ادله اربعه سره ثابت دی اماالکتاب فقوله تعالی ﴿فهم شرکاء فی الثلث﴾ واماالسنة فکمافی سنن ابی داؤدوابن ماجه والحاکم عن السائب ان قال کان رسول الله ﷺ شريکی فی الجاهلية ،اوپرجوازشرکت دائمه واجماع ده اوپه قياس سره په دي ډول ثابت دی چې شرکت درزق دطلبولولاره ده اودرزق طلبول مشروع عمل دی.

(۱)شِرْكَةُ الْمِلْكِ أَنْ يَمْلِكَ اثْنَانِ عَيْنًا إرْثًا أَوْ شِرَاءً وَكُلٌّ أَجْنَبِيٌّ فِي قِسْطِ صَاحِبِهِ (۲) وَشِرْكَةُ الْعَقْدِ أَنْ يَقُولَ أَحَدُهُمَا شَارَكْتُك فِي كَذَا وَيَقْبَلَ الْآخَرُ (۳) وَهِيَ مُفَاوَضَةٌ إنْ تَضَمَّنَتْ وَكَالَةً وَكَفَالَةً وَتَسَاوَيَا مَالًا وَتَصَرُّفًا وَدَيْنًا (۴) فَلَا تَصِحُّ بَيْنَ حُرٍّ وَعَبْدٍ وَصَبِيٍّ وَبَالِغٍ (۵) وَمُسْلِمٍ وَكَافِرٍ

**ترجمه**:شرکت ملک دادی چې دوه مالکان شي دکوم شئ په وراثت ياخيستلوسره ،اوپه دوئ کې هريواجنبی دی دهغه بل په حصه کې ،اوشرکت عقددادی چې له دوڅخه يوووايي ماله تاسره په فلانی شئ کې شرکت وکړ،اودوهم هغه قبول کړي ،اوهغه شرکت مفاوضه دی که متضمن وي وکالت اوکفالت لره ،اودواړه به برابروي په مال اوتصرف اودين کې، نوشرکت مفاوضه صحيح نه دی دآزاداوغلام ،اوهلک اوبالغ ،اومسلمان اوکافرترمنځ.

**تشريح**:(۱)شرکت پردوه قسمه دی .(۱)شرکت املاک .(۲)شرکت عقود .شرکت املاک دادی چې يوشئ دوه کسان په ميراث وموندي اويايې دواړه په ګډه واخلي يادواړوته څوک يوشئ هبه کړي اودوئ دواړه هغه قبول کړي يادواړو مالونه په دي ډول سره ګډشي چې امتيازيې پاتې نه شي ،ددي قسم حکم دادی چې له شريکينوڅخه يوهم دهغه بل له اجازي څخه بغيردهغه بل په حصه کې تصرف نه شي کولی اوهريودهغه بل په حصه کې اجنبی دی.

(۲)دشرکت دوهم قسم شرکت عقددی ،شرکت عقدهغه دی کوم چې دعقدپه سبب حاصل شوی وي مثلايوکس بل ته ووايي چې ماته ددومره روپوپه تجارت کې شريک کړي ،اوهغه بل ووايي مادامنظوره کړه ،بياشرکت عقودپرڅلورقسمه دی ،شرکت مفاوضه ،شرکت عنان (بکسرالعين وفتحها) شرکت وجوه ،شرکت صنائع.

(۳)مفاوضه له تفويض څخه ده په معنی دمساواة فی کل شئ ،اوپه اصطلاح کې شرکت مفاوضه دادی چې وکالت اوکفالت لره متضمن وي يعنی له دواړوشريکانوڅخه هريودهغه بل له طرفه وکيل اوکفيل وي ،اوپه مال اوتصرف کې اودين کې دواړه برابروي لهذاددووحرو،مسلمانو،بالغانو، اوعاقلانو کسانوترمنځ صحيح کيږي ولی چې دمذکوره صفاتوپه لرونکوکې مساواة متحقق دی.

(۴)مذکوره شرکت يعنی شرکت مفاوضه دازاداوغلام په منځ کې صحيح نه دی اودهلک اوبالغ ترمنځ صحيح نه دی ولی چې حرد تصرف اوکفاله (ديوچاضامن کيدل )دواړومالک دی اوغلام دمولی له اجازت څخه بغيرله دواړوڅخه ديوه هم مالک نه دی لهذاپه تصرف کې دمساواة دفقدان په وجه سره په دوئ کې شرکت مفاوضه صحيح نه ده .همداراز نابالغ هم دی چې دکفالې خومطلقامالک نه دی اودتصرف دولی

له اجازت څخه بغير مالک نه دی لهذا دفقدان مساوات په وجه سره په نابالغ اوبالغ کې هم شرکت مفاوضه صحيح نه دی.

(۵)قوله ومسلم وکافر ای لايصح بين مسلم وکافر، يعني دطرفينو په نزد دمسلمان اوکافرترمنځ هم شرکت مفاوضه صحيح نه ده ولی چې ذمی دځينو داسې تصرفاتو مالک دی دکوموچې مسلمان مالک نه دی (لکه تصرف فی الخمروالخنزير) لهذا په دواړوکې مساوات نشته .البته دامام ابويوسف رحمه الله په نزدصحيح دی ولی چې په کفالت اووکالت کې دواړه سره برابردي له دې څخه دزائد اعتبار نشته .

(٦) وما يشتريه كل يقع مشتركا إلا طعام أهله وكسوتهم (٧) وكل دين لزم أحدهما بتجارة وغصب وكفالة لزم الآخر (٨) وتبطل إن وهب لأحدهما أو ورث ما تصح فيه الشركة (٩) لا العرض (١٠) ولا تصح مفاوضة وعنان بغير النقدين والتبر والفلوس النافقة (١١) ولو باع كل نصف عرضه بنصف عرض الآخر وعقد الشركة صح

**ترجمه** :اوکوم يوچې څه اخلي هغه مشترک دي ماسوادکوروالاوله خورک اودهغوئ له جامو څخه ،اوکوم قرض چې لازم وي په دوئ کې په يوه دتجارت ياغصب ياکفالت په وجه سره نوهغه پرهغه بل هم لازم ده ،اوباطليږي که هبه کړل شوکوم يوته ياپه وراثت کې وروررسيدوداسې مال په کوم کې چې شرکت صحيح وي ،نه سامان ،اوصحيح نه دی شرکت مفاوضه اوعنان له نقدينواودسپينوزرولهوټوتواوله رائج الوقت پيسو څخه بغير ،اوکه خرڅ کړهريوه خپل نصف سامان دهغه بل دنصف سامام په عوض اوعقدشرکت يې وکړنوصحيح دی.

**تشريح** :(۶)له متفاوضينو څخه چې کوم يوهم څه شئ اخلي هغه به ددواړومشترک وي ولی چې دشرکت مفاوضه مقتضی مساوات دی اوپه تصرف کې هريوشريک دهغه بل قائم مقام دی نودکوم يوه کوم شئ اخيستل داسې شولکه چې دواړواخيستی وي البته هغه شيان کوم چې له حاجات راتبه (دائمی ضروريات )څخه وي هغه بناء برضرورت دشرکت مفاوضه له حکم څخه مستثنی دي مثلادعيال طعام اوجامې اونوردضرورت شيان ولی چې دائمی ضرورت معلومة الوقوع دی کوم چې نه په شريک ثانی باندي واجب کيدای شي اونه دشريک ثانی له مال څخه ثمن ورکول کيدای شي لهذا په هغوېسي به مشتری مختص وي .

(۷)له متفاوضينو څخه که پرکوم يوه باندي دتجارت په وجه قرض راغی يادکوم شئ دغصب کولوپه وجه سره يادکوم شئ دضامن کيدلوپه وجه سره قرض راغی نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدهغه بل هم ددي ضامن دی ترڅوچې مساوات متحقق شي اوکفالت ښکاره شي ولی چې له دواړوڅخه هريودهغه بل ضامن هم دی ،حال داچې دامام ابويوسف رحمه الله په نزددغصب اوکفالت په صورت کې چې کوم قرض دده پرذمه لازم وي دهغه به هغه بل شريک ضامن وي ولی چې داقرضه له تجارتې قرضه څخه ماسوادہ لهذادادکوم جنايت دتاوان په شان په هغه بل شريک لازمه نه ده .

(۸)که له متفاوضينو څخه کوم يوديوداسې شئ وارث شوچې په هغه کې شرکت صحيح وي ياکوم يوه ته کوم شئ هبه کړل شواوهغه شئ دده لاس ته ورسيدونوشرکت مفاوضه باطليږي ولی چې په مفاوضه کې مساوات فی المال ابتداء هم ضروري دی اوبقاء هم حال داچې په مذکوره صورت کې مساوات بقاء باقی پاتې نه شواوس داشرکت عنان ګرځي ولی چې په شرکت عنان کې مساوات شرط نه دی.

(۹)قوله لاالعرض اى لايبطل المفاوضه لووهب لاحدهماالعرض ،يعني كه اسباب مثلاً جامه وغيره كوم شئ په دي ډول ده ته حاصل شونوپه دي سره شركت مفاوضه نه ماتيږي ولی چې په اسبابو کې شرکت صحیح نه دی لهذا په هغوكې تفاوت شركت مفاوضه لره نه ابتداء مانع دی اونه بقاء لهذا اسبابو په وجه شركت مفاوضه نه باطليږي.

(۱۰)شركت مفاوضه اوشركت عنان له نقدينو(يعني دراهم اودنانير)اودسپينواوسروزروپه ټكرو اورائج الوقت روپيو څخه په علاوه كې جائزنه دی يعني له دي شيانوڅخه ماسواپه عروضو، مكيلي اوموزني شيانوكې اوځمكه كې شركت صحيح نه دی يعني داشيان دشركت لپاره رأس المال نه شي جوړيدلی ولی چې داربح مالم يضمن (يعني دداسې شئ ګټه چې ته دهغه ضامن نه يې )ته مفضی كيږي اوربح مالم يضمن څخه نبی كريم ﷺ منع فرمايلې ده،ربح مالم يضمن ته دمذكوره شيانو دمفضی والی صورت په دي ډول دی چې له شريكينوڅخه يوه خپل دشركت عروض دزروروپوپه عوض خرڅ كړل اوهغه بل په پنځه لس سوه خرڅ كړل اودعقدمقتضی په كل كې شركت دی نودزرو روپوخاوندچې له هغه بل سره په پنځلس سوه كې له زروڅخه په زائدپنځه سوه كې خپله حصه وړي نوهغه ربح مالم يضمن ده (يعني دداسې شئ ګټه ده چې دهغه ته ضامن نه يې).

(۱۱)له دراهمواودنانيروڅخه علاوه په عروضواوحيوان كې شركت مفاوضه صحيح نه دی ليكن كه څوك په دي كې شركت مفاوضه كول وغواړي نوصورت يې دادی چې له شريكينوڅخه دي هريودخپل مال غيرمعين نصف حصه دهغه بل دمال د غيرمعين نصف حصې په عوض خرڅ كړي اوس دي دواړه شريكان شي ولی چې دوئ دواړه دعقدبيع په ذريعه په قيمت كې شريكان شول ليكن داشركت املاک دی بيادي له دي څخه وروسته دشركت عقدعقدوكړي ترڅوهريودهغه بل وكيل اوكفيل شي نودابه شركت مفاوضه شي دادشركت في العروض دصحت حيله ده .

(۱۲)وَعِنَانٌ اِنْ تَضَمَّنَتْ وَكَالَةً فَقَطْ وَتَصِحُّ مع التَّسَاوِي فِي الْمَالِ دُونَ الرِّبحِ وَعَكْسِهِ وَبِبَعْضِ الْمَالِ(۱۳)وَبِخِلَافِ الْجِنْسِ وَعَدَمِ خَلْطٍ (۱۴)وَطُولِبَ الْمُشْتَرِي بِالثَّمَنِ فَقَطْ(۱۵)وَرَجَعَ علی شَرِيكِهِ بِحِصَّتِهِ مِنهُ وَتَبْطُلُ بِهَلَاكِ الْمَالَيْنِ اَوْ أَحَدِهِمَا قَبلَ الشِّرَاءِ(۱۶)وَاِنْ اشْتَرَى أَحَدُهُمَا بِمَالِهِ وَهَلَكَ مَالُ الْآخَرِ فَالْمُشْتَرَى بَيْنَهُمَا وَرَجَعَ علی شَرِيكِهِ بِحِصَّتِهِ مِنهُ

**ترجمه** :اوشركت عنان دی كه متضمن وي صرف وكالت لره اوصحيح دی په مال كې له برابري سره نه په ربح كې يادي عكس وي ياپه بعض مال كې شركت وي ،ياخلاف جنس وي اوله عدم خلط سره، اومطالبه به كيږي صرف له مشتري څخه دثمنو ،اورجوع به كوي پرشريک باندي په دومره حصه كې اوباطليږي ددواړويايوه دمال په هلاكيدلوسره له شراء څخه وړاندي ،اوكه واخيست يوه په خپل مال سره څه شئ اوهلاک شودهغه بل مال نواخيستل شوی سامان به ددواړوترمنځ مشترک وي اورجوع به كوي دهغه دحصې په باره كې دهغه په ثمنوكې له خپل شريک څخه .

**تشريح** :(۱۲)دشركت عقددوهم قسم شركت عنان دی ،شركت عنان دادی چې صرف وكالت ته متضمن وي كفالت ته متضمن نه وي يعني له شريكينوڅخه هريودهغه بل وكيل وي كفيل نه وي نوداشركت عنان دی،په شركت عنان كې داصحيح دی چې مال ددواړوبرابروي اوپه ربح كې كمی بيشي وي اود دي عكس هم

صحیح دی چې مال برابرنه وي اوربح برابره وي ولی چې دربح استحقاق لکه څرنګه چې دمال په ذریعه سره راځي دعمل په ذریعه سره هم راځي ولی چې له شریکینو څخه کله کوم یوډیرچالاک اوقوی وي کوم چې په مساوات منافع باندي نه راضی کیږي لهذادتفاضل فی الربح ضرورت دی په دي وجه تفاضل فی الربح جائزده ،اوداهم جائزده چې له شریکینو څخه هریوپه خپل بعض مال سره عقدشرکت وکړي اوپه بعض مال سره شرکت ونه کړي ولی چې به شرکت عنان کې مساوات فی المال شرط نه دی .

(۱۳)قوله وخلاف الجنس ای وتصح مع خلاف الجنس ،یعني همداشان شرکت عنان په خلاف الجنس کې هم صحیح دی مثلا دیوه له طرف څخه دراهم وي اودهغه بل له طرف څخه دنانیروي اوپه دواړمالونو کې خلط هم ضروري نه دی ،حال داچې دامام زفر ﷫ اوامام شافعی ﷫ په نزدپه خلاف الجنس کې جائزنه دی ولی چې ددوئ په نزدخلط شرط دی حال داچې په دوومختلفواجناسو کې خلط نه شي متحقق کیدلی اوددوئ په نزددخلط دشرط والی وجه داده چې ربح دمال فرع ده اوپه فرع کې شرکت نه شي راتلای ترڅوچې به اصل کې شرکت نه وي اوپه اصل کې شرکت په خلط سره راځي .داحنافوپه نزد څرنګه چې خلط شرط نه دی لهذاپه خلاف الجنس کې هم شرکت عنان صحیح دی اوپه ربح کې شرکت منسوب الی العقددی نه الی المال لهذادمال خلط والی شرط نه دی ،که شریکین مال سره ګډنه کړي بیاهم شرکت صحیح دی ولی چې شرکت منسوب الی العقددی الی المال نه دی لهذاعقدشرط دی ، البته له عقدڅخه وروسته له خلط څخه وړاندي هلاک شوی مال دصاحب المال شمارل کیږي دشرکت نه شمارل کیږي .

(۱۴)په شرکت عنان کې چې له شریکینو څخه کوم یوهم څه شئ اخلي دثمن مطالبه به له هغه څخه کیږي نه له هغه بل څخه ولی چې شرکت عنان وکالت ته خومتضمن دی مګرکفالت ته متضمن نه دی لهذایودهغه بل ضامن نه دی په دي وجه دیوه په ذمه چې څه لازم وي دهغه مطالبه له هغه بل څخه نه شي کیدلی ،البته له خپل شریک څخه به دحصي په اندازه واپس اخلي که ده له خپل مال څخه اداء کړی وي ولی چې دی دخپل شریک له طرف څخه وکیل دی اووکیل له خپل مال څخه دثمن داداء کولوپه صورت کې په موکل درجوع کولوحق لري.

(۱۵)که په شرکت عنان کې دکوم شئ له اخیستلوڅخه وړاندي ددواړوشریکانومال هلاک شو، یااحدالمالین هلاک شونوشرکت باطلیږي ولی چې په شرکت کې معقودعلیه مال دی اوپه هلاکت معقودعلیه سره عقدباطلیږي لکه په هبه،وصیت،اوبیع کې چې په هلاکت معقودعلیه سره عقد باطلیږي،او دهلاکت احدالمالین په صورت کې په دي وجه باطلیږي چې دکوم شریک مال چې نه دی هلاک شوی هغه دهغه بل په خپل مال کې په شریکولونه راضی کیږي ترڅوچې دی خپله دهغه بل په مال کې شریک نه وي لهذاشرکت باطلیږي .

(۱۶)له انعقادشرکت څخه وروسته که یوه شریک په خپل مال سره کوم شئ واخیستی بیادشریک آخرمال دکوم شئ له اخیستلوڅخه وړاندي هلاک شونواخیستل شوی شئ به ددواړوترمنځ دشرط مطابق مشترک وي ولی چې داخیستلو پروخت شرکت قائم وولهذاپه اخیستل شوی شئ کې ملک مشترک واقع

شوی دی ،البته مشتری به له خپل شریک څخه دده د حصې په اندازه ثمن اخلي ولی چې دهغه بل شریک په حصه کې ده په وکالت سره اخيستل کړي دي او ثمن يې له خپل مال څخه ورکړي دي لهذا ده ته بقدر حصه په خپل شریک درجوع کولو حق شته .

(١٧)وَتَفْسُدُ إِنْ شَرَطَ لِأَحَدِهِمَا دَرَاهِمَ مُسَمَّاةً مِنَ الرِّبْحِ (١٨)وَلِكُلٍّ مِنْ شَرِيكَيِ الْعِنَانِ وَالْمُفَاوَضَةِ أَنْ يُبْضِعَ وَيَسْتَأْجِرَ وَيُودِعَ وَيُضَارِبَ وَيُوَكِّلَ (١٩)وَيَدُهُ فِي الْمَالِ أَمَانَةٌ

**ترجمه** :او شرکت فاسد دی که يې شرط ولګاوو کوم يوه لره له منافع څخه د معلومو دراهمو ،او په شرکت عنان او مفاوضه کې هر شریک لره اختيار شته چې هغه مال په بضاعت سره وکړي یا کوم څوک مزدور وکړي یا يې د امانت په ډول ورکړي یا پر مضاربت ورکړي یا څوک وکيل جوړ کړي ،او د هر یوه قبضه پر مال د امانت قبضه ده.

**تشریح** :(١٧)که له شریکینو څخه د کوم يوه لپاره د معين دراهمو شرط ولګول شو نو دا شرکت صحيح نه دی (مثلا يوه شریک وويل چې له منافعو څخه به لس درهمه زما وي باقی چې کوم پاتې شي هغه به په منځ کې سره تقسیمو)ولی چې شرکت په منافعو کې د اشتراک تقاضا کوي او داسې شرط اشتراک ختموي ولی کیدای شي چې نفع دي صرف لس درهمه وي لهذا په داسې شرط سره شرکت فاسديږي .

(١٨)د شرکت مفاوضه او عنان هر شریک ته دا جائزده چې هغه مال بطور بضاعت (چاته مال ورکړل شي ترڅو هغه دا خرڅ کړي او ددي مال کل ثمن او منافع صاحب المال ته واپس کړي )ورکړي ،همداشان هر يو لره جائزده چې د مال شرکت د حفاظت لپاره څوک مزدور ونيسي ،یا مال شرکت له يو چا سره د امانت په ډول کښيږدي ،یا يې چاته په مضاربت (هغه عقد شرکت فی الربح دی په کوم کې چې له يوه طرف څخه مال وي او له هغه بل طرف څخه عمل وي )ورکړي ،یا څوک په مال کې د تصرف کولو وکيل جوړ کړي ،دا ټول امور ځکه چې له عادتونو د تجارانو څخه دي له کومو څخه چې تاجر چاره نه لري لهذا هر شریک ته ددي اختيار شته .

(١٩) په مال شرکت کې د شریک قبضه قبضه امانت ده ولی چې ده د مالک په اجازه سره پر دي قبضه کړي ده علی وجه البدل نه ده لکه د اخيستلو لپاره پر يو شئ قبضه کول او علی وجه الوثيقه هم نه ده لکه د مرتهن قبضه پر رهن باندي لهذا د هر يوه قبضه په مال مشترک باندي پر وديعت د قبضې په شان ده نو که بغير له تعدی هلاک شو نو شریک به ضامن نه وي .

(٢٠)وَتُقْبَلُ إِنِ اشْتَرَكَ خَيَّاطَانِ أَوْ خَيَّاطٌ وَصَبَّاغٌ عَلَى أَنْ يَتَقَبَّلَا الْأَعْمَالَ وَيَكُونَ الْكَسْبُ بَيْنَهُمَا (٢١)وَكُلُّ عَمَلٍ يَتَقَبَّلُهُ أَحَدُهُمَا يَلْزَمُهُمَا (٢٢)وَكَسْبُ أَحَدِهِمَا بَيْنَهُمَا (٢٣)وَوُجُوهٌ إِنِ اشْتَرَكَا بِلَا مَالٍ عَلَى أَنْ يَشْتَرِيَا بِوُجُوهِهِمَا وَيَبِيعَا وَتَتَضَمَّنُ الْوَكَالَةَ (٢٤)وَإِنْ شَرَطَا مُنَاصَفَةَ الْمُشْتَرَى أَوْ مُثَالَثَتَهُ فَالرِّبْحُ كَذَلِكَ وَبَطَلَ شَرْطُ الْفَضْلِ

**ترجمه** :او شرکت تقبل دی که شریک شول دوه درزیان یا يو درزی او يو رنګساز پر دي شرط چې دواړه به کارکوي او ګټه به د دواړو ترمنځ وي .او کوم عمل چې يو قبول کړي هغه به په دواړو لازم وي .او د يوه په ګټه کې به دواړه مشترک وي، او شرکت وجوه دی که هغوئ دواړه شریک شول بلا ماله ،پر دي شرط چې دواړه به

په خپل اعتبار سره مال اخلي او بيا به يې خرڅوي او دا متضمن وي وكالت لره نو كه يې شرط كړ دا اخيستل
شوى شئ نصف نصف يا ثلث ثلث ،نو نفع به همدا شان وي او باطليږي دزيادت شرط .

**تشريح** :(۲۰)قوله وتقبل اى الثالث من انواع شركة العقد شركة تقبل ،يعني دشركت عقد دريم قسم شركت تقبل دى كوم ته
چې شركت صنائع ،شركت اعمال او شركت ابدان هم ويل كيږي .عند الاحناف تقبل دادى چې دوه كاريگران
په دې متفق شي چې دواړه به له خلكو څخه اعمال بلوي او كوم يو چې كوم كار هم كوي پر هغه بل به لازم وي
او گټه به ددواړو مشتركه وي لكه ددوو درزيانو (خياطانو) يا يوه درزى اويوه رنگساز (رنگ
كونكى) شركت ،په دې دول شركت جائز دى ولى چې مقصود على وجه الاشتراك دمنافعو تحصيل دى كوم
چې پر وجود دمال موقوف نه دى بلكه په عمل سره هم ممكن دى. دا قسم شركت جائز دى خواه كه شريكين په
اعمالو كې متفق وي لكه دوه خياطان يا دوه رنگسازان يا په اعمالو كې مختلف وي لكه يو خياط اويوه
رنگساز.دامام شافعي او امام زفر په نزد جائز نه دى ولى چې په منافعو كې شركت په رأس المال كې په
شركت مبنى دى نو كله چې په دې قسم كې مال نشته نو شركت به څرنگه متصور شي.

(۲۱)او له دواړو څخه چې كوم يو هم كوم كار اخلي هغه پرده او دده پر شريك لازم دى ولى چې خپله
ده هغه مسلط كړ چې دخپل ځان او مال پاره كار قبلوه.

(۲۲)كه چيرته كار يوه وكړ نو بيا به هم گټه ددواړو په منځ كې نصف نصف وي كه يې شرط نصف
نصف لگولى وو كه نه نو چې څرنگه يې شرط لگولى وي ولى چې له دواړو څخه هر يو دضمان عمل په وجه
سره بقدر ضمان دنفع مستحق گرځي نه دحقيقت عمل په وجه سره نو ديو له طرف څخه دعمل زياتوالى له هغه
بل سره اعانت شمارل كيږي.

(۲۳)قوله ووجوه اى الرابع من انواع شركة العقد شركة وجوه ،يعني دشركت عقد څلورم قسم شركت وجوه دى
دكوم چې صورت دادى چې له شريكينو سره مال نه وي هغوئ په دې خبره عقد شركت كوي چې دخپل
اعتبار او اعتماد په بناء به مال په پور اخلو بيا به يې خرڅوو كومه نفع چې حاصله شي هغه به په خپل منځ كې
تقسيمو و .دشركت دا قسم هم جائز دى او هر يو چې څه اخلي په هغه كې هر يو له دوئ څخه دهغه بل وكيل دى
په دې وجه چې دشركت دا قسم وكالت ته متضمن وي ولى چې تصرف على الغير جائز نه دى مگر په وكالت
يا ولاية خو دلته نشته لهذا وكالت متعين دى .

(۲۴)كه په شركت وجوه كې شريكينو دا شرط ولگاوو چې اخيستل شوى شئ به ددواړو ترمنځ
نصف نصف وي نو بقدر ملك به نفع هم په همدې شان نصف نصف وي په دې صورت كې كمى اوبيشي
جائز نه ده،او كه يې اخيستل شوى شئ اثلاثا واخيستى يعني يوه يو ثلث او دوهم دوه ثلثه واخيستى نو نفع به
هم اثلاثا تقسيميږي ولى چې په شركت وجوه كې منافع بالضمان دي او ضمان په مشترى كې بقدر ملك دى
لهذا منافع به هم بقدر ملك وي .او دزائد ربح شرط لگول باطل دي مثلا مشترى نصف نصف وي او منافع
اثلاثا وي نو دا جائز نه ده ولى چې زائد ربح مالم يضمن (يعني دهغه شئ نفع ده چې مضمون نه دى) دى
لهذا دا شرط لگول جائز نه دى.

## فَصْلٌ فِي الشَّرِكَةِ الْفَاسِدَةِ

### دافصل دشركت فاسده په بيان كې دى

شركت فاسده هغه دي په كوم كې چې دصحت شركت له شرطونو څخه كوم شرط متحقق نه شي ،له ماقبل سره يې وجه دمناسبت داده چې كله منصف رحمه الله دشركت صحيحه له بيان څخه فارغ شونو دشركت فاسده بيان يې شروع كړدتاخيروجه يې ظاهره ده چې شركت صحيحه اصل دى اوشركت فاسده دعارض په وجه سره دى

( ۱ ) وَلَا تَصِحُّ شَرِكَةٌ فِي احْتِطَابٍ وَاصْطِيَادٍ وَاسْتِقَاءٍ ( ۲ ) وَالْكَسْبُ لِلْعَامِلِ وَعَلَيْهِ أَجْرُ مِثْلِ مَالِلْآخَرِ ( ۳ ) وَالرِّبْحُ فِي الشَّرِكَةِ الْفَاسِدَةِ بِقَدْرِ الْمَالِ وَإِنْ شُرِطَ الْفَضْلُ ( ۴ ) وَتَبْطُلُ الشَّرِكَةُ بِمَوْتِ أَحَدِهِمَا وَلَوْ حُكْمًا

**ترجمه** :اوشركت صحيح نه دى دلرګيوپه راجمع كولو ،شكاركولو ،اواوبوكښلوكي ،نوحاصلات دكاركونكي دي اوپرده دهغه بل اجرت مثل واجبيږي ،اونفع په شركت فاسده كې بقدرمال وي كه څه هم يې دزائدشرط لګولى وي ،اوشركت باطليږي دكوم يوه په مرګ سره كه څه هم مرګ حكماوي .

**تشريح** :(۱)په مباح الاصل شيانو مثلالرګيو ،وښو ،دښكارپه حاصلولواوداوبوپه كښلوكې شركت صحيح نه دى ولى چې شركت وكالت ته متضمن دى اودحصول مباح لپاره توكيل صحيح نه دى ولى چې موكل لره په ثابت شوي شئ كې دوكيل دتصرف ثابتولوته وكالت ويل كيږي اودمباح شيانوخوخپله موكل مالك نه وي نوهغه به په دي باره كې بل څوك خپل قائم مقام څرنګه جوړكړي ،لهذامباح شئ دهغه دى چاچې پرهغه وراندي قبضه وكړه .

(۲)نوله شريكينوڅخه چې كوم يوشكاروكړي يالرګي راټول كړي هغه به دهغه وي دهغه بل به نه وي ولى چې دښكاركونكى اولرګيودراټولونكى قبضه له هغه بل څخه وړاندي ده ،اوكه هغه بل شريك له ده سره كومك وكړمثلايوه لرګي مات كړجمع يې كړل اودوهم رابار كړل نوكومك كونكې ته به دده دكارپه مثل مزدوري وركول كيږي ولى چې اولنى په په عقدفاسدسره ددوهم منافع حاصلې كړي لهذادى به اجرت مثل وركوي .

(۳)هرهغه شركت كوم چې په يوه وجه سره فاسدشي په هغه كې منافع دشريكينودرأس المال په حساب سره تقسميږي كه څه هم يې ديوه لپاره دزائدشرط لګولى وي يعنى كه رأس المال نصف نصف وونومنافع بد هم نصف نصف تقسيميږي اوكه اثلاثاوونومنافع به هم همداشان وي ،يوه لره زياتو اوبل لره دكمومنافعوشرط به باطل وي ولى چې ربح په دي كې دمال تابع ده لهذابقدرمال به وي .

(۴)كه له شريكينوڅخه كوم يومړشوخواه كه حقيقة مړشوى وي اوكه حكمامثلامرتد شو (العياذبالله )اودارالحرب ته ولاړى نوشركت باطليږي ولى چې شركت وكالت ته متضمن دى اووكالت

په مرګ سره باطليږي، همداشان وکالت په مدت تدکيدلو او دار الحرب ته په تللو سره هم باطليږي لهذا په مرګ يا دار الحرب ته په تللو سره شرکت هم باطليږي.

(۵) ولم يزك مال الآخر (۶) فإن أذن كل وأديا متعاقبا ضمن الثاني (۷) ولو متعاقبا ضمن الثاني (۸) فإن أذن أحد المتفاوضين بشراء أمة ليطأها ففعل فهي له بلا شيء.

**ترجمه**: او زکوة دې نه ورکوي دهغه بل دمال دهغه له اجازت څخه بغير، نو که هريوه اجازت ورکړاو دواړو يوځای اداء کړنو دواړه ضامنان دي، او که يې يو په بل پسې اداء کړنو وروستنه والا ضامن دی، او که دمفاوضې کوم شريک دمينځې داخيستلو اجازه ورکړه دوطئ لپاره او ده واخيستله نو مينځه به دده وي بلاعوضه.

**تشريح**: (۵) يو شريک دهغه بل شريک له اجازت څخه بغير دده دمال زکوة نه شي اداء کولی ولې چې هريوه ته دهغه بل له طرف څخه صرف په تجارتي امورو کې دتصرف کولو اجازه حاصله ده او زکوة له تجارتي امورو څخه نه دی لهذا دده له طرف څخه زکوة نه اداء کيږي بلکه دابه دااداء کونکی له طرف څخه تبرع وي.

(۶) او که له شريکينو څخه هريوه هغه بل ته دزکوة داداء کولو اجازت ورکړی وو او يادواسې وشول چې ددوئ دواړو په بې خبري کې په يو وخت خپل او دشريک له طرف څخه زکوة اداء کړنو له دواړو څخه به هريو دهغه بل لپاره ضامن وي ولې چې مقصود له عهده واجب څخه خروج دی او دامقصود خپله دده په اداء کولو سره حاصليږي او مامور له دي ذمه واري څخه معزول دی خواه که دی علم لري او که يې نه لري ولې چې داعزل حکمی دی او دعزل حکمی لپاره دوکيل علم شرط نه دی. نو دمأمور اداء کونه له مقصود څخه خالي ده په دي وجه دده ادائيګي معتبره نه ده.

(۷) او که له شريکينو څخه هريوه هغه بل ته دزکوة داداء کولو اجازت ورکړی وو مګر داسې وشول چې هريوه علی سبيل التعاقب زکوة اداء کړنو دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد وروستنه اداء کونکی ضامن دی خواه که داول اداء کول ده ته معلوم وي او که نه وي ولې چې له شريکينو څخه هريو مأمور باداء الزکوة دی او څرنګه چې زکوة اولنی اداء کړلهذا وروستنه اداء کول زکوة نه دی نو دمخالف امرپه وجه سره ضامن دی او داولنی په اداء کولو سره دوهم له دزکوة له اداء کولو څخه معزوليږي خواه که دی علم لری او که يې نه لريی ولې چې داعزل حکمی دی او دعزل حکمی لپاره دوکيل علم شرط نه دی، دصاحبينو په نزد دعدم علم په صورت کې ضامن نه دی.

ف: دامام صاحب قول راجح دی لماقال المفتی غلام قادر النعمانی: القول الراجح هو قول الامام، لان قول الامام قول المتون ........ وقال العلامة ابن عابدين: ان اصحاب المتون التزموا وضع القول الصحيح (القول الراجح: ۱/۵۱۷)

(۸) که دشرکت مفاوضه له دووشريکانو څخه يوه هغه بل ته دصحبت کولو لپاره ديوې مينځې داخيستلو اجازت ورکړهغه دشرکت په روپو سره مينځه واخيستله نو دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دا مينځه داخيستونکی لپاره مفته ده، او دصاحبينو په نزد به اجازت ورکونکی له اخيستونکی څخه نيمايي روپۍ اخلي ولې چې اخيستونکی له مشترک مال څخه داسې قرض اداء کړکوم چې خاص پرده واجب وو لهذا دده ملګری به له ده څخه خپله حصه وصول کوي، دامام ابو حنيفه رحمه الله دليل دادی چې شرکت مفاوضه مقتضی

ی ددي چې دامينځه ددوئ په منځ کې مشترکه وي ليکن کله چې يوه هغه بل ته دوطی اجازت ورکړاووطی بغيرله ملک ځخه جائزنه ده لهذاهمدابه فهمول کيږي چې ده خپله حصه هغه ته هبه کړه په دي وجه اوس مينځه بلاعوضه دهغه بل شوه .

# كِتَابُ الْوَقْفِ

## داکتاب دوقف په بيان کې دی

وقف لغة دحبس (بندولو ،درولو)په معنى دی ،اواصطلاحي تعريف يې له صاحبينو ځخه په دي ډول منقول دی ،چې يوشئ دالله تعالى په ملک ساتلواودهغه منفعت دالله تعالى په لاره کې صدقه کولوته وقف ويل کيږي .ددوئ په نزدوقف لازم وي ،اوموقوفه شئ دده له ملکيت ځخه وځي اودالله تعالى ملک ګرځي .

له ماقبل سره يې مناسبت دادی چې له شرکت اووقف دواړو ځخه مقصودانتفاع ده ،البته دشرکت نفع په دنياکې حاصليږي اودوقف نفع په اخرت کې ،په همدي وجه يې دوقف تفصيل له شرکت ځخه مؤخرکړ.

واقف،وقف کونکی ته ويل کيږي ،اوموقوف اسم مفعول دی وقف شوی شئ ته ويل کيږي، اوپر کوموخلګوچې وقف وکړل شي هغوئ ته موقوف عليهم اوپرکومه لاره چې وقف وکړل شي هغې ته جهت وقف ويل کيږي .له حديث شريف ځخه دوقف جوازمعلوميږي مروی ده چې حضرت عمر ﷺ نبی کريم ﷺ ته وفرمايل . انی اصبت ارضابخيبر ولم اصب مالاقط انفس منه فماتأمرنی،فقال ﷺ ان شئت حبست اصلهاتصدقت بثمرتها.

(١) هُوَ حَبْسُ الْعَيْنِ عَلٰى مِلْكِ الْوَاقِفِ وَالتَّصَدُّقُ بِالْمَنْفَعَةِ (٢) وَالْمِلْكُ يَزُولُ بِالْقَضَاءِ لَا إِلٰى مَالِكٍ (٣) وَلَا يَتِمُّ حَتّٰى يَقْبِضَ وَيُفْرِزَ وَيَجْعَلَ آخِرَهُ لِجِهَةٍ لَا تَنْقَطِعُ (٣) وَصَحَّ وَقْفُ الْعَقَارِ بِبَقَرِهِ وَأَكَرَتِهِ (٥) وَمُشَاعٍ قَضٰى بِجَوَازِهِ)

**ترجمه** :هغه عين شئ دواقف په ملک کې ساتل دی اوصدقه کول دي دمنفعت ،اوملک زائليږي په قضاء سره نه دکوم مالک طرف ته،اووقف نه تاميږي ترڅوچې قبضه وکړل شي اوعليحده کړل شي او ددي انجام داسې وګرځول شي چې منقطع نه وي ،اوصحيح دی دځمکې وقف کول ددي له غوايانو اوکارکونکوسره ،اوداسې مشاع شئ دکوم دجوازحکم چې شوی وي .

**تشريح** :(١)مصنف رحمه الله دوقف هغه شرعي تعريف کړی دی کوم چې له امام صاحب رحمه الله ځخه منقول دی،چې کوم شئ دواقف په ملک کې ساتلواودهغه منفعت دالله تعالى په لاره کې صدقه کولوته په اصطلاح کې وقف ويل کيږي.داتعريف په دي خبره مبنی دی چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدخو دمسجدوقف لازميږي ليکن بقيه اوقاف نه لازميږي اوپرهغه دواقف ملکيت باقي پاتې کيږي ، البته له دي ځخه دوه صورتونه مستثنی دي يوصورت مصنف رحمه الله په راتلونکی عبارت کې بيان کړی دی .

(٢)که چاخپل مال وقف کړنوله وقف شوي مال ځخه دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددواقف ملک نه زائليږي مګرله دوو اموروځخه په يوه سره - نمبر١:حاکم له وقف شوي مال ځخه دواقف دملک

دزائیلدلوفرمان جاري کړي ولی چې په کومه مسائلوکې چې دمجتهدینو اختلاف وي په هغوکې دحاکم دحکم ضرورت وي.

نمبر۲. واقف وقف شوی مال په خپل مرګ پورې معلق کړي مثلاداسې ووایې ،اذامت فقدوقفت داری علی کذا،نوصحیح داده چې دادوصیت په شان له مَرګ څخه وروسته په ثلث مال کې لازمیږي .دامام ابویوسف رحمه الله په نزدد حکم حاکم یاتعلیق بالموت ضرورت نشته بلکه دواقف په قول کولوسره له وقف شوی مال څخه دواقف ملک زائلیږي ولی چې وقف خپل ملک دالله تعالی لپاره زائلول دي لهذادعتق په شان دوقف په قول کولوسره هم دواقف ملک زائلیږي ،دامام محمد رحمه الله په نزددواقف ملک هغه وخت زائلیږي کله چې دوقف شوي مال لپاره کوم متولی مقررکړای شي اومذکوره مال ده ته وسپارل شي ولی چې تملیک من الله قصدانه متحقق کیږي ولی چې الله تعالی دهرشئ مالک دي البته کوم بنده ته دتسلیمولو په ضمن کې دزکوة وغیره په شان متحقق کیږي په دي وجه دوقف متولی مقررکول اوهغه ته موقوف شئ سپارل ضروري دی .اودامام محمد رحمه الله په نزدداهم شرط دی چې مذکوره مال به مشاع نه وي .اوواقف دخپل ځان لپاره له منافعو څخه دکوم شئ شرط ونه لګوي اوابدي وي چې اخرکاردفقراء لپاره وي.

ف:دامام ابویوسف رحمه الله قول راجح دی لمافی ردالمحتار:ثم ان ابایوسف یقول یصیر وقفابمجردالقول لانه بمنزلة الاعتاق وعلیه الفتوی(ردالمحتار:۳/۳۹۲)

(۳)کله چې وقف دائمه داختلاف موافق صحیح شي (یعنی دامام ابویوسف رحمه الله په نزد دوقف قول وکړي ،دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدله دي سره حکم حاکم یاتعلیق بالموت وي ،اودامام محمد رحمه الله په نزدوقف متولی ته وسپارل هم شي )نواوس وقف دواقف له ملک څخه زائلیږي لیکن پرچاچې یې وقف کړی دی دهغه په ملک کې نه داخلیږي ولی چې که دموقوف علیه په ملک کې داخلیدی نودواقف دشرط موافق به دده له ملک څخه دنورو موقوف علیهم طرف ته نه منتقل کیدو لکه چې دده نوراملاک دي اوحال دادی چې دواقف دشرط موافق وقف شوی مال له ده څخه بالاجماع منتقل کیږي.

دامام محمد رحمه الله په نزدوقف ترهغه وخت پورې نه تامیږي ترکله چې واقف هغه له خپل ملک څخه علیحده نه کړي اومتولی ته یې په قبضه کې ورنه کړي له خپل ملک څخه زائلول په دي وجه ضروري دي چې دامام محمد رحمه الله په نزددمتولی پرهغه قبضه شرط ده کومه چې له علیحده کولو څخه بغیرنه شي کیدای .همدراز دطرفینوپه نزدوقف ترهغه وخت پورې نه تامیږي ترڅوچې دده انجام داسې ونه ګرځول شي چې هغه هیمشه لپاره منقطع نه وي یعنی جاري پاتې شي ولی چې دطرفینورحمهما الله په نزددجوازوقف لپاره مؤبدوالی شرط دی نوکه یې دوقف داسې جهت مقررکړکوم چې منقطع کیږي نوهم داوقف جائزدی ددوئ په نزدددي جهت له انقطاع وروسته به وقف دفقراء لپاره وي که څه هم واقف دفقراء نوم نه وي ذکرکړی ولی چې لفظ دوقف اوصدقه په خپله دفقراء دذکرخبرورکوي.

ف:دامام ابویوسف رحمه الله قول راجح دی لمافی ردالمحتار:الاان عندابی یوسف لایشترط ذکره لان لفظ الوقف والصدقة منبئ عنه ولهذاقال فی الکتاب وصاربعدهاللفقراء وان لم یسمهم هذاهوالصحیح(ردالمحتار:۳/۴۰۰)

(۴) ځمکه وقف کول بالاتفاق صحیح ده ولې چې ځمکه ابدی ده لیکن داشیاء منقوله وقف دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد جائزنه دی ولې چې دوئ لره بقانشته نودتوقیتی اوغیرمؤبدوالی په وجه ددوئ وقف جائزنه دی ،اودصاحبینوپه نزدکه ځمکه دهغې له غوایانواوګرانوسره وقف کړې نوجائزدی که اوګران دواقف غلامان وي،همداشان دنوروزرعی آلاتووقف هم جائزدی ولې چې په حصول مقصودکې دوئ دځمکې تابع دي اوډیرداسې احکام شته چې تبعاخوثابتیږي مګرمقصودانه ثابتیږي.

(۵) قوله ومشاع ای وصح وقف مشاع ،یعنی دداسې مشاع شئ (دشرکاؤپه منځ کې غیر منقسم شئ) وقف کول چې دهغه دجوازحکم قاضی کړی وي جائزدی ولې چې په مختلف فیه حکم کې دقاضی حکم اختلاف قطع کوي ،اوکه قاضی حکم نه وي کړی نودامام ابویوسف رحمه الله په نزدوقف مشاع (دغیرمنقسم شئ وقف)جائزدی ولې چې تقسیم دقبض تتمه ده اودامام ابویوسف رحمه الله په نزدقبضه شرط نه ده نودهغې تتمه هم شرط ده .دامام محمد رحمه الله په نزددقابل تقسیم شئ مشاعاوقف صحیح نه دی په دي وجه چې دامام محمد رحمه الله په نزداصل قبضه شرط ده نودهغې تتمه یعنی تقسیم هم شرط دی.

ف :دامام ابویوسف رحمه الله قول راجح دی لمافی الهندیة :وقف المشاع المحتمل للقسمة لایجوز عندمحمدوبه اخذمشائخ بخاری کذافی السراجیة والمتاخرون افتوابقول ابی یوسف انه یجوز وهو المختار (الهندیة: ۲/۳٦۵)

ف :داباید یادوساتل شي چې دااختلاف په قابل تقسیم شئ کې دی اوکه وقف شوی مال قابل تقسیم نه وي نودامام محمد رحمه الله هم یې په هبه په قیاسولوسره مع الشیوع دهغه وقف جائزګڼي .

(۶) وَمَنقُولٍ فِيهِ تَعَامُلٌ (۷) وَلَا يَمْلِكُ الْوَقْفَ وَلَا يُقْسَمُ وَإِنْ وَقَفَ عَلَى أَوْلَادِهِ (۸) وَيَبْدَأُ مِنْ غَلَّتِهِ بِعِمَارَتِهِ بِلَا شَرْطٍ (۹) وَلَوْ دَارًا فَالْعِمَارَةُ عَلَى مَنْ لَهُ السُّكْنَى وَلَوْ أَبَى أَوْ عَجَزَ عَمَّرَ الْحَاكِمُ بِأُجْرَتِهَا (۱۰) وَيَصْرِفُ نَقْضَهُ إِلَى عِمَارَتِهِ إِنْ احْتَاجَ وَإِلَّا حَفِظَهُ لِلِاحْتِيَاجِ وَلَا يُقْسِمُهُ بَيْنَ مُسْتَحِقِّي الْوَقْفِ

ترجمه :او(وقف صحیح دی) دداسې منقولي شئ په کوم کې چې تعامل وي ،اودوقف نه مالک جوړول کیږي ،اونه تقسیمیږي که څه هم یې وقف کړي پرخپل اولادباندي ،اوابتداء دي کوي دوقف په حاصلاتو سره دوقف په تعمیربلاشرطه ،اوکه موقوف مکان وي نودهغه تعمیردهغه په اوسیدونکی ده اوکه ده انکاروکړ یاعاجزشونوحاکم دي دهغه مرمت وکړي دهغه په اجرت سره ،اودهغه ملبه دي دهغه په عمارت کې ولګوي که ضرورت وي که نه نو محفوظه دي وساتې دضرورت لپاره اونه دي تقسیموي دمستحقینو دوقف په منځ کې .

تشریح :(۶) قوله ومنقول فیه تعامل ای صح وقف منقول فیه تعامل الناس ،یعنی دامام محمد رحمه الله په نزدداسې منقولي شیانووقف کول جائزدی دکوموچې وقف عادة مروج وي مثلااسلحه ،قرآن مجید ،کتب حدیث وغیره ،دقیاس تقاضاخوداده چې جائزنه وي ولې چې دجوازوقف لپاره مؤبدوالی شرط دی حال داچې په منقولي شیانوکې تایید نشته مګراستحساناد منقولي شیانووقف جائزګرځول شوی دی ولې چې له روایاتوڅخه جوازمعلومیږي ﴿قال صلى الله عليه وسلم اماخالد فقدحبس ادراعه واعتده فی سبیل الله تعالی﴾ (یعنی خالدخپلې زغرې اواسان دالله تعالی په لاره کې وقف کړي دي)، دامام ابویوسف رحمه الله په نزدصرف په اسلحه اواسانوکې جائزدی .

ف :دامام محمد رحمه الله قول راجح دی لمافی الجوهرة النیرة :قال محمدیجوزوقف مافیه تعامل من المنقولات ....وعندابی یوسف لایجوزفاکثرفقهاء الامصارعلی قول محمد (الجوهرة النیرة: ۱/۳۳۳)

(۷)کله چې وقف صحيح شونواوس هغه په ملکيت کې رواستل صحيح نه دی ولی چې دوقف دصحيح والی په صورت کې وقف شوي شيان دواقف له ملک څخه خارجيږي لهذااوس نه دی خپله دهغه مالک کيدای شي اونه کوم بل څوک دهغه مالک جوړولی شي،همداشان له صحت وقف څخه وروسته دموقوف شئ تقسيمول هم صحيح نه دي که څه هم دواقف پراولادوقف وي ولی چې دمستحقينو دوقف حق په عين وقف کې نه دی بلکه په منافع وقف کې دی لهذاعين دهغوئ په منځ کې تقسيمول صحيح نه دی،البته دامام ابويوسف رحمه الله دمسلک مطابق که وقف مشاع وواوشريک تقسيمول وغوښتل نودا تقسيم صحيح کيږي ولی چې تقسيم صرف دتميزاوافرازيين الحقوقونوم دی،اوممنوع تمليک دی افرازنه دی.

(۸)يعنی ضروري ده چې ترټولووړاندې دوقف په حاصلاتوسره دوقف مرمت وکړل شي خواه واقف دوقف دمرمت شرط لګولی وي اوکه يې نه وي لګولی ولی چې دواقف قصددادی چې هميشه دي دوقف منافع مستحقينوته رسيږي حال داچې دوقف بقاء هميشه ممکنه نه ده الاداچې دهغه مرمت کيږي لهذادوقف دتعميرشرط اقتضاء ثابت دی.

(۹)که چاخپل کوردچاداوسيدنې لپاره وقف کړنوددي کورتعميربه ددي کس له مال څخه کيږي دچاچې اوسيدنه وي لان الغرم بالغنم،اوکه ده(من له السکنی)دکورله مرمت څخه انکاروکړ يادفقرپه وجه له مرمت څخه عاجزشونوحاکم دي وقف شوی کورچاته په کرايه ورکړي اوپه همدي کرايه دي دکورمرمت وکړي اوله مرمت کولوڅخه وروسته چې کله داجارې مده ختمه شي نوکوردي واپس من له السکنی ته وروسپاري ولی چې په دي صورت کې دواقف اوموقوف عليه دواړودحق رعايت دی په دي دول چې دواقف په صدقه دواماجاري وي اودموقوف عليه به سکونت.

(۱۰)دوقف له عمارت وغيره څخه چې څه ولويږي ياآلات وقف (مثلادزراعت آلات )مات شي نوحاکم (که اوس ضرورت وي )دي داملبه اودامات شوي آلات دوقف په مرمت کې مصرف کړي .اوکه اوس ضرورت نه وي نوودي ساتې کوم وخت چې دوقف دمرمت يعنی جوړولوضرورت پيش شي هغه وخت دي په مرمت کې مصرف کړي داپه دي وجه چې دحاجت پروخت دوقف له تعميرڅخه عاجزنه شي . اودوقف مات شوي شيان دمستحقين وقف په منځ کې تقسيمول جائزنه دي ولی چې دمستحقين وقف حق په عين وقف ياجزء وقف کې نه دی بلکه په منافع وقف کې دی.

(۱۱) وَإِنْ جَعَلَ الْوَاقِفُ غَلَّةَ الْوَقْفِ لِنَفْسِهِ أَوْ جَعَلَ الْوِلَايَةَ إِلَيْهِ صَحَّ (۱۲) وَيُنْزَعُ لَوْ خَائِنًا كَالْوَصِيِّ وَإِنْ شَرَطَ أَنْ لَا يُنْزَعَ

**ترجمه** :اوکه وکړواقف دوقف حاصلات خپل ځان ته يايې دهغه ولايت ځان ته کړنوصحيح دی ، اواخيستل کيږي به که هغه خائن وي لکه وصی که څه هم دده له ده څخه دنه اخيستلوشرط لګولی وي.

**تشريح**:(۱۱)که واقف حاصلات وقف دخپل ځان لپاره وساتل مثلاوي ويل چې دوقف له حاصلاتوڅخه به يوه ځلورمه برخه زماترژونده زمالپاره وي زماله مرګه وروسته به دفلان فلان لپاره وي ،ياواقف دوقف سرپرستي خپل ځان ته کړه نودامام ابويوسف رحمه الله په نزدداجائزده ولی چې په دي کې خلکوته وقف

كولوترغيب دى ،دامام محمد رحمه الله قول دعدم جوازدى ولى چې دامام محمد رحمه الله په نزد وقف متولى ته ورسپارل ضروري دى كوم چې دلته موجودنه شو.

**ف**:دامام ابويوسف رحمه الله قول راجح دى لمافى الدرالمختار: وجاز جعل غلة الوقف لنفسه او الولاية لنفسه عند الثانى وعليه الفتوى (الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ۴۲۳/۳)

(۱۲)كه واقف داشرط ولګاووچې دوقف حاصلات به ترژونده زه اخلم يابه ددي متولى زه يم نوداصحيح ده هوكه دى په وروسته كې خائن ثابت شونوموقوف شئ به له ده څخه اخيستل كيږي ولى چې له خائن ثابتيدلوڅخه وروسته هم وقف دده په لاس كې په پريښودلوكې دفقراؤنقصان دى ،كه څه هم ده په وقف نامه كې داشرط لګولى وي چې داشئ به زماله قبضې څخه نه وځي نوبيابه هم ددي شرط لحاظ نه كيږي ولى چې داشرط له حكم شرع څخه خلاف دى لهذاداباطل دى ،داداسې دى لكه چې دكوم وصى خيانت ظاهرشي نوهغه وصى به موقوف كيږي اودده پرځاى به بل وصى مقرريږي ولى چې ده لره په وصى په برقرارساتلوكې دموصى دماشومانوتاوان دى.

## فصل فى المسجدوغيره

### دافصل دمسجد،مقبري وغيره په بيان كې دى

دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددمسجدځينې احكام له نوروا وقافوڅخه مختلف دي مثلاله مسجدڅخه دقضاء قاضى بغيردواقف ملک نه زائليږي په دي وجه يې دهغه احكام په مستقل فصل كې ذكركړل.

(۱)وَمَنْ بَنَى مَسْجِدًا لَمْ يَزُلْ مِلْكُهُ عنه حتى يُفْرِزَهُ عن مِلْكِهِ بِطَرِيقِهِ وَيَأْذَنَ بِالصَّلَاةِ فيه (۲)وإذا صلى فيه واحد زَالَ مِلْكُهُ (۳)وَمَنْ جَعَلَ مَسْجِدًا تَحْتَهُ سِرْدَابٌ او فوقه بَيْتٌ وَجَعَلَ بَابَهُ إلَى الطَّرِيقِ وَعَزَلَهُ او اتَّخَذَ وَسْطَ دَارِهِ مَسْجِدًا وَأَذِنَ لِلنَّاسِ بِالدُّخُولِ فَلَهُ بَيْعُهُ وَيُورَثُ عنه

**ترجمه** :چاچې مسجدجوړكړنونه زائليږي له هغه څخه دده ملک ترڅوچې هغه جلاكړي له خپل ملک څخه په لاره سره اواجازت وركړي خلكوته په هغه كې دلمونځ كولو ،نوكه چې په هغه كې لمونځ اداءكړكوم يوه كس نوزائليږي دده ملک ،اوكوم كس چې مسجدجوړكړي له كوم څخه لاندي چې تهه خانه وي يادهغه پرسربالاخانه وي اودهغه دروازه دلاري طرف ته كړي اوهغه جلاكړي يادخپل كورپه منځ كې مسجدجوړكړي اواجازت وركړي خلكوته په هغه كې دداخليدلونوده لره دهغه خرڅول جائزدي اوله ده څخه به په ميراث وړل كيږي .

**تشريح** :(۱)چاچې مسجدجوړكړنودطرفينوپه نزدداترهغه وخت پوري دواقف له ملک څخه نه خارجيږي ترڅوچې دى مسجدسره له لاري له خپل ملک څخه جلانه كړي ولى چې له دي څخه بغيرمسجدخالص دالله تعالى لپاره نه شي كيداى ،اوداهم ضروري ده چې خلكوته په هغه كې دلمانځه داداء كولواجازت وركړي ولى چې دطرفينوپه نزدوقف متولى ته ورسپارل ضروري دى اودهرشئ سپارل دهغه مطابق وي نوڅرنګه چې په مسجدكې حقيقي قبضه متعذره ده لهذالمونځ كول دحقيقي قبضې قائم مقام ګرځول كيږي .

(۲) بیادیوه روایت مطابق که یوه کس هم په هغه کې لمونځ اداء کړنو دواقف له ملک څخه زائلیږي مګرمشهورروایت دادی چې صلوة بالجماعت ضروري دی ولی چې مسجددهمدي لپاره جوړیږي .دامام ابویوسف رحمه الله په نزدصرف په دومره وینا سره چې جعلته مسجدا ،دواقف له ملک څخه زائلیږي ولی چې دامام ابویوسف رحمه الله په نزددوقف متولی ته تسلیمول شرط نه دي .

(۳) که چاداسې مسجدجوړکړچې ترهغه لاندي ته خانه وي یادهغه پرسرکومه کوټه جوړه کړه او دمسجدلاره یې دعامې لاري طرف ته کړه اومسجدیې له خپل ملک څخه جلاکړیایې دخپل کورپه وسط کې مسجدجوړکړاوخلکوته یې هغه ته دراتلواجازت هم ورکړنوداشان مسجدونه دوقف په حکم کې نه دي لهذامالک دامسجدونه خرخولی شي اوکه داکس مړشونودباقی ترکه په شان داهم وارثانوته منتقل کیږي ولی چې په اولنیودووصورتونوکې له مسجدسره دعبدحق دمتعلق والی په وجه داخالص دالله تعالی لپاره نه شولهذادادمسجدپه حکم کې نه دي ،مګرداحکم هغه وخت دی چې ته خانه اوبالاخانه داکس له مسجدڅخه ماسواپه نورومصالحوکې استعمال کړي اوکه یې دمسجدپه مصالحوکې استعمال کړه نودمالک ملک له هغه څخه دمنقطع والی په وجه اوس دادمسجدپه حکم کې دی اوپه دریم صورت کې په دي وجه مسجدنه دی چې مسجدخوهغه وي چې له هغه څخه دخلکو دمنع کولوحق هیچالره نه وي حال داچې دلته خوددي کس ملک مسجدته دمحیط والی په وجه ده لره داحق شته چې خلک هغه ته له راتللوڅخه منع کړي لهذادادمسجدپه حکم کې نه دی.

(۴) وَمَنْ بَنى سِقَايَةً أَوْ خَانًا أَوْ رِبَاطًا أَوْ مَقْبَرَةً لَمْ يَزُلْ مِلْكُهُ عَنْهُ حَتّى يَحْكُمَ بِهِ حَاكِمٌ (۵) وَإِنْ جَعَلَ شَيْئًا مِنَ الطَّرِيقِ مَسْجِدًا صَحَّ كَعَكْسِهِ

**ترجمه** ،اوکوم کس چې حوض جوړکړي یاسرای یادلشکردپراولپاره خای یاهدیره جوړه کړي نونه زائلیږي له دي څخه دده ملک ترڅوچې حکم وکړي ددي حاکم ،اوکه دلاري څه حصه مسجدجوړکړل شونوصحیح دی لکه چې ددي عکس صحیح دی

**تشریح** ،(۴) که چادمسلمانانولپاره داوبوحوض جوړکړیایې دمسافرولپاره سرایٔ جوړکړیایې رباط(قلعه یاهغه ځای چیرته چې لشکردسرحدد حفاظت لپاره قیام کوي ) جوړ کړیایې خپله ځمکه دقبرستان (هدیري )لپاره وقف کړه نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدله دي څخه دواقف ملک نه زائلیږي ترڅوچې حاکم ددي دوقف فرمان جاري نه کړي یاواقف ددي اضافت الی مابعدالموت ته ونه کړي کمامر،همداوجه ده چې واقف له حکم حاکم یااضافت الی مابعدالموت څخه وړاندي له دي څخه استفاده کولی شي .

**ف**:دامام ابویوسف رحمه الله په نزددوقف په قول کولوسره دواقف له ملک څخه زائلیږي ولی چې دده په نزدمتولی ته سپارل شرط نه دی .دامام محمد رحمه الله په نزدچې کله خلک له سقایه څخه اوبه وڅښي اوپه خان (سرایٔ)اورباط کې واوسیږي اوپه مقبره کې مړه دفن کړي نوده اقف ملک زائلیږي ولی چې دامام محمد رحمه الله په نزدمتولی ته سپارل شرط دی اوددي شیانودسپارلوهمداصورتونه دي .

**ف**:دامام ابویوسف رحمه الله قول راجح دی لمافی ردالمحتار:ثم ابایوسف یقول یصیروقفابمجردالقول لانه بمنزلة الاعتاق وعلیه الفتوی(ردالمحتار:۳/۳۹۲)

(۵)كه چادضرورت په اساس دعامې لاري څه برخه په مسجدكې داخله كړه نوداجائزده ځكه چې دادعامومسلمانانو ضرورت دى په دي شرط چې پرلاره دتيريدونكولپاره مضرنه وي نوداجائزدى لكه چې ددي عكس جائزدى يعني دكوم ضرورت په اساس مسجدلاره جوړول اوپرهغې تيريدل جائزده ولى چې لاره اومسجددعامو خلكولپاره دي لهذا دضرورت پروخت به ديوه كمې له هغه بل څخه پوره كيږي ولتعارف اهل الامصارفي الجوامع ،نوله جنب ،څاروى اوحائضه ښځوڅخه ماسواهريوه لره دتيريدلو اجازت شته.

**ف**:يومسجدتنگ دى دهغه دلويولوسخت ضرورت دى خلك بې چاره سخت پريشانه دي مگرله مسجد سره متصل سركاري(حكومتي)ځمكه ده اوگورنمنټ (حكومت )دمسجددلويولواجازت نه وركوي ،په دي صورت كې مسجد بلااجازته وسيع كول جائزدي اوكه يا؟

**ځواب** :ددي حكم دادى چې پرحكومت باندي دمساجدوانتظام اوتعميربقدرضرورت فرض دى معهذاكه حكومت خپل دافرض نه اداء كوي بلااذن دحكومت پرځمكه تعميرجائزنه دى .والله تعالى اعلم .(جديدمعاملات كى شرعى احكام:۲/۱۹۴)

**ف**:كه پركومه ځمكه باندي مسلمانانودضرورت په وجه ياله مسئلې څخه دناخبرتياپه اساس له حكومت څخه دباضابطه اجازت اخيستلوبغيركوم مسجدجوړكې اودجوړولو پروخت اووروسته دحكومت ذمه دارانوليدى مگرمنع يې ونه كړه ترڅوچې په دي كې باقاعده په جماعت سره لمونځ شروع شونودذمه دارافسرانوسكوت هم په دي معامله كې بحكم اجازت گڼل كيږي اومسجدشرعي جوړيږي ، له دي څخه وروسته دهغه دړنگولوحق هيڅ څوك نه لري ،ولى چې دضرورت په مواقعوكې مسجدجوړل په خپله دحكومت له فرائضوڅخه دى اوداځمكه دهغه مصرف ده .په دي وجه چې كله مسجد جوړشواوجماعت شروع شونواوس ده لره دختمولوحق نشته .(اسلام كانظام اراضى:۱۵۸)

**ف**:كه حكومت پركومه سركاري ځمكه باندي مسلمانانوته دلمانځه دااداء كولوعارضي اجازت وركړاودايې واضحه كړه چې داځاى به مستقل مسجدنه جوړيږي صرف په عارضي ډول سره دلمانځه دااداء كولواجازت دى نوپه دي كې په باجماعت لمانځه اداء كولوسره داځاى شرعي مسجدنه جوړيږي ،همداشان كه كوم كس په خپله مملوكه ځمكه كې په عارضي ډول دباجماعت لمانځه دااداء كولواجازت وركړنوپه دي سره هم هغه ځاى شرعي مسجدنه جوړيږي ،البته داضروري ده چې ددي دعارضي والى مكمل ثبوت موجودوي ، اوبنه خبره داده چې په داسې ځايونوكې دي كتبه وليكل شي اوودي لگول شي چې داځاى مسجدنه دى ترڅوپه وروسته كې جنگ جوړنه شي .(اسلام كانظام اراضى:۱۵۹)

اللهم ارناالحق حقاوارزقنااتباعه وارناالباطل باطلاوارزقنااجتنابه
وصلى الله تعالى على خير خلقه محمدوعلى آله واصحابه اجمعين